



# زاهد

# پښتو ـ پښتو سيند

اوله برخه

د افغانستان د علومو اکاډیمي
د پښتو څېړنو نړیوال مرکز

عبدالقيوم زاهد مشواني



څېړندوی دانش څېړندویه ټولنه

hedayatdarulelme.com،دارالکتب الإسلامیة

بسم الله الرحمن الرحيم

## د کتاب ځانګړنې:




د کتاب نوم :: زاهد پښتو_ پښتو سیند

عبدالقیوم زاهد مشواني

خپرندوی :: دانش خپرندویه ټولنه

چاپ شمېر :: ۱۰۰۰ ټوکه

چاپ نېټه :: ۱۳۸۵ ل/ ۲۰۰۶ ز

کمپوزګر :: مجیب الله مطیع

د پښتې ډیزاین :: حاجي محمد عمرخیل

چاپ او کمپيوټر ځای

د دانش خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه_ پېښور

E-mail: danish2k2000@yahoo.com Tel/ Fax: 2564513


hedayatdarulelme.com،دارالکتب الإسلامیة

# د خپرندویې ټولنې یادښت

د پښتو ژبې، ادب او فرهنګ مینه وال زموږ له دې هیلې او ارمانه ښه خبر دي، چې د دانش خپرنځي لامبوځن د خدمت پر سیند د ورګډېدو له همغې لومړۍ شیبې په دې تکل کې دي، چې د نړیوالې سیالۍ وچې او ساحل ته د ګرانې پښتو علمي او کولتوري بېړۍ پورېباسي. پاك رب د زړونو مالك دی. زموږ د ارمان او له ارمان سره زموږ د مینې او نیت سپېځلتیا ورته د ورغوي غوندې ښکاره ده.

موږ چې په دې لړ کې تر دې شیبې څه کړي، پر هغې خو همدا تاسې ښاغلي مینه وال ګواهان ښه یاست. د دانش خپرنځي د ملي کولتوري ارمانونو په لړ کې یو ستر ارمان هم د خپلو خوانو پښتنو فرهنګیالیو د علمي تندې د خړوبولو لپاره د یوه نسبتاً بشپړ او پر ننني نړیوالو علمي آرونو یو ولاړ یاروان "سیند" (قاموس) وړاندې کول وو. موږ له تېرو څو کلو راهیسې د خپلې دې ورکې په لټون پسې د خپلو را پر لاس وزلو (وسیلو) او امکاناتو اوسپنیزې څپلۍ پر پښو کړې. یو څه مزل مو لا نه و کړی، چې د پښتو یو **"روښانډې خواخوږي"**(!) مو د زړه وست (متاع) او همیانۍ وترورله او هغه د زړه په مینه او وینه پیل کړی مزل یې په نیمه لار کې راځخه پاتې کړ؛ خو بیا مو هم هوډ ونه بایله، د زغم وسله مو ونه غورځوله، سترګې مو ومښلې، غځونې مو وکړه او هغه راځخه پاتې پلونه مو په دې داډ او هوډ پسې واخیستل:

چې غوټې پسې وهې په لاس به در شي

لله الحمد! دادی د هغې سپېځلې هیلې نیالګی مو ببرور او مثمر شو. د پښتو سیندونو د بهیر دا مرستیال سیند مو له خپل څومره ییز او څرنګییز (کمي او کیفي) انځور سره ستاسې درنو پښتوپالو او پوهنپالو مخې ته په مینه کېښود، دا اوس پر تاسې چې زموږ دا مینه وړې ډالۍ په کوم کاڼي تلئ.

په پای کې د خپل کولتوري یون د ناستومان ملګري ځوان او هڅاند څېړونکي عبدالقیوم زاهد مشواڼي د بې کچه او پرله پسې هڅو او زیار یو جهان مننه، چې د خوشال بابا خبره:

بدرګه که محبت راســــره نه وای
یك تنها به په خونخوارو لارو تلل څوك

همدا راز که مو د ګران استاد محمد آصف صمیم همښنی لارښوونې او پېرزوینې ملې نه وای، بیا به مو هم مزل ټکنی او نکوښی وای، د منني او خوښنې لپاره یې لاسونه لپه کوو.

په مینه

# یادداشت رئیس اکادمی علوم افغانستان
# بمناسبت نشر "زاهد پښتو_ پښتو قاموس"

فرهنگ ها موثر ترین وسایل رهنمائی و همکاری به خود آموزان و پویندگان عرصهٔ ادب و زبان بشمار میآیند.

چه فرهنگ ها راه آموزش مستقل واژه ها و زبانهای مختلف را بسهولت برای ترجمان ها، نو آموزان، آموزگاران و پژوهشگران هموار مینمایند.

در جهان سوم که اکثراً از کاروان تمدن معاصر عقب نگه داشته شده اند، نگارش قاموس ها برای دستری بزبان ها و علوم از اهم ضرورت های اولیهٔ فرهنگی پنداشته میشود.

بر این بنا، از آنروز که اکادمی علوم افغانستان منحیث یگانه نهاد علمی تحقیقی با اعتبار در کشور فرهنگ نگاری و دایرة المعارف نویسی را آغاز نموده، زاهد پښتو_ پښتو قاموس، شانزدهمین فرهنگی است که از طرف این نهاد علمی تحقیقی (اما) به کمک مالی "دانش خپرندویه ټولنه" بچاپ میرسد.

نشر، زاهد پښتو_ پښتو قاموس، گام ارزشمندیست برای بالندگی بیشتر زبان و ادبیات پښتو که بهمکاری علمی دانشمند مبتکر اکادمی علوم افغانستان عبدالقیوم مشوانی و حمایت مالی "دانش خپرندویه ټولنه" به شمار آثار ادبي فرهنگی ما میافزاید.

از نکات قابل عطف در تدوین پښتو_ پښتو قاموس مطالب زیرین میتوان بر شمرد:

الف_ نوشتن قاموس با رسم الخط معیاری زبان پښتو.

ب_ کار برد الفبای فونیمیک بمنظور تلفظ بهتر لغات در مقابل واژه ها.

ج_ جلوگیری از بزرگی حجم قاموس با اکتفا به چند معنی اهم هر واژه.

اکادمی علوم افغانستان، ضمن عرض تهنیت با تقدیم این اثر سودمند به پیشگاه علاقمندان و نیازمندان زبان بزرگ ملی (پښتو) استفاده از این قاموس را بهمگان مخصوصاً به ترجمان ها، محصلان، استادان و پژوهشگران زبان و ادبیات پښتو در داخل و خارج کشور سفارش مینماید.

با اظهار سپاس و تقدیر از دانشمند عزیز عبدالقیوم مشوانی و انجمن محترم "دانش خپرندویه ټولنه"

با تمنیات عالی به گسترش فرهنگ و دانش.
معاون سر محقق عبدالباری "راشد"
رئیس اکادمی علوم افغانستان.

# پر پښتو سیندونو د یوه بل مرستیال ورګډېدل -

د ویاړ او خوښۍ ځای دی، چې د پښتو ژبې د ویړې بېدیا د خروبولو په موخه د بهاندو سیندونو (قاموسونو) په مرستیالانو کې "زاهد پښتو- پښتو سیند" هم ورګډ شو.

پښتو سیندونه چې اوس یې وړتیا (ظرفیت) د اباسین له مورګو یوه سمندر ته رسېدونکې ښکاري، که څه هم زموږ د فرهنګیالیو تنده غره یو څه ماتولای شي؛ خو نړیوال پرمختیایي علمي بهیر ته په پام سره ددغسې سیندونو د لارونتیا او خوړلنۍ لپاره د منځپانګې ځانګیزونې (مسلکیتوب) ته اړتیا تر پخوا زیاته انګېرل کېږي، "زاهد پښتو پښتو سیند" د پښتنې کولتوري ټولنې د هیلو د لړۍ هغه کړۍ ده، چې د پښتو سیندونو په بهیر کې یې لار څارل کېده.

د ښاغلي عبدالقیوم زاهد مشواني بهولی سیند پر ځانګیز (ادبي او کولتوري) ارزښت سربېره د پښتنو فرهنګیالیو لپاره له دې نېك ښوګڼ سره هم رامنځته کېږي، چې سږ کال (په عیسوي شمېر) ددې سیند په بهېدو یا بهاندېدو.د پښتو سیندونو عمر دوو سلیو یا پېړیو ته ورسېد. پوره دوه سلۍ وړاندې د هند د روهیله پښتنې کورنۍ د بړیځ قوم د حافظ رحمت خان زوی، د شاه عالم خان لمسي او د محمود خان کړوسي نواب محبت خان (۱۱۶۴_۱۲۲۳ق) د ریاض المحبت په نامه یو فرهنګ پر (۱۲۲۱ق/۱۸۰۶ع) تالیف کړ، چې ویبونه او کلیمات پکې یواځې مانا شوي نه دي؛ بلکې د هر ویي او لغت ګرامري ارزښتونه یا ځانګړنې یې هم ښوولې دي.

تر دې بنستي قاموس یا سیند دوه کاله وروسته د دویم سیند د روانولو ویاړ هم د همدې کورنۍ بل عالم او فاضل غړي نواب حافظ رحمت خان (۱۱۲۰_۱۱۸۸ق) د عجایب اللغات په تالیف سره تر لاسه کړ او دا بهیر دادی د څه کم شپېتو سیندونو تر بهېدو وروسته د ځوان څېړونکي ښاغلي عبدالقیوم زاهد مشواني دا لوی سیند د تېر بهیر د یوه غځوونکي او یوه نېك ښوګڼ په توګه د ستاینې او ارزښت وړ ګام دی.

زه د هېواد او افغاني ټولنې د ملي او کولتوري بهیر حساستیا ته په پام ددغه لوی سیند خپراوی د ټولو پښتنو فرهنګپالو او فرهنګیالو لپاره بختور ګڼم او له علمي نړۍ سره د پښتنو د سیالۍ په هیله یې ښاغلي لیکوال او ګران خپرندوی ته مبارکي وایم.

محمد آصف صمیم

۲۲/۲/۱۳۸۵

# سریزه

د پښتو قاموس لیکنې د هڅو بهیر نژدې دوه پېړۍ تر شا پرېښې دي او د څه له پاسه یوې نیمې پېړۍ را په دېخوا په سیستماتیك او اکاډمیك ډول په بېلابېلو هېوادونو کې د بېلابېلو کسانو له خوا پښتو قاموسونه لیکل او چاپ شوي دي، چې ځینې یې دادي:

د ډورن پښتو- انګلیسي قاموس (۱۸۴۷م) پیټر زیورګ، د هـ. راورټي پښتو- انګلیسي قاموس (۱۸۶۰م) لندن، د هـ. بیلیو پښتو- انګلیسي قاموس (۱۸۶۷م) لندن، د میرزا سید محمد پښتو- انګلیسي قاموس (۱۹۷۰م) راولپنډۍ، د مارګنستیرن اتمالوژیکي قاموس (۱۹۲۷م)، پښتو- اردو او اردو- پښتو قاموسونه (۱۹۳۱م) هند، د پښتو اصطلاحاتو قاموس (۱۹۳۲م) لندن، د وزیر محمد ګل خان مومند پښتو سیند (پښتو- دري) قاموس (۱۹۳۸م) دا د پښتو ژبې لومړنی قاموس دی، چې په هېواد کې دننه چاپ شوی، د لعل محمد او پوهاند حبیبي سپېڅلې پښتو (پښتو- دري) قاموس (۱۹۴۰م) کندهار، پښتو قاموس (پښتو- دري) د پښتو ټولنې له خوا په دوو ټوکو کې (۱۹۵۲_۱۹۵۵م) چاپ شوی، ظفر اللغات د بهادر شاه ظفر کاکاخېل، پښتو ژبه (پښتو- پښتو) دا قاموس په (۱۹۷۰م) کې پیل شوی، بشپړ شوی؛ خو تر دې مهاله یې (۱۲) ټوکه خپاره شوي او بشپړ خپور شوی نه دی. لس زره پښتو لغتونه (۱۹۴۱م) کابل، لغات افغاني پېښور، د پ. زودین پښتو- روسي قاموس (۱۹۵۰م) روسیه. د پ. زودین روسي- پښتو قاموس (۲۱) زره لغتونه (۱۹۵۵م) روسیه، د لبیدیف پښتو- روسي او روسي- پښتو جیبي قاموسونه (۱۹۶۱_۱۹۶۲م) روسیه، د استرلوف پښتو- روسي قاموس ۵۰ زره لغته (۱۹۶۶م) مسکو. د لبیدیف، یاخېوېچ او کلینینه پښتو- روسي قاموس، د افغانستان د علومو اکاډمۍ پښتو- پښتو تشرېحي قاموس، د قلندر مومند دریاب (پښتو- پښتو)، د افغانستان د علومو اکاډمۍ انګلیسي- پښتو قاموس. د افغانستان د علومو اکاډمۍ پښتو- انګلیسي قاموس، د افغانستان د علومو اکاډمۍ انګلیسي- پښتو تلفظ والا قاموس محمد هاشم رحیمي ۱۳۸۴ او...

د پښتو- پښتو قاموس لیکنې په بهیر کې لومړنی مشرح او نسبتاً بشپړ قاموس هماغه د افغانستان د علومو اکاډمۍ پښتو- پښتو تشرېحي قاموس و،

له بده مرغه چې تر بشپړتابه وروسته يې نوې چاپ او ناخپره برخه (ګ- ی) د اسلامي انقلاب تر بريالیتابه وروسته د خپل منځو جګړو د اور خوراك شوه.

له نېکه مرغه په دې وروستيو کې د افغانستان د علومو اکاډمۍ هماغه له منځه تللې برخه (ګ- ی) بيا بشپړه او د مېډيوټيك په مالي لګښت چاپ شوه؛ خو دا بشپړونه له پخوانيو څلورو ټوکونو سره خورا زيات توپير لري:

په دې نوې بشپړه شوې برخه کې د لغتونو شمېر د تورو د شمېر په پام کې نيولو سره کم دی، ډېر شمېر لغتونه پاتې دي. يوازې د هر لغت په څو مهمو مانااوو بسنه شوې ده د پخوانيو چاپ ټوکونو په څېر د لغت بېلګه د پښتو د کلاسيك متن د يوه بيت يا نثري ټوټې په ترڅ کې نه ده راوړل شوې، د لغت هر اړخيزه او پراخه تشريح نه ده شوې؛ ځکه خو نوې بشپړه شوې برخه په پخواني سبك د بشپړولو غوښتنه کوي، چې په دې ډول افغاني فرهنګ د يوه ښه او مشرح پښتو- پښتو قاموس څښتن شي.

په حقيقت کې د پښتو قاموس ليکنې بهير د نړۍ د نورو ژبو په پرتله خورا زيات ټکنی او د يوه نسبي بشپړتابه پړاو ته يې زيات واټن پاتې دی. د بېلګې په توګه تر اوسه په پښتو ژبه کې د مسلك پر بنسټ قاموس ليکنه نه ده دود شوې؛ د کرنې، څاروي روزنې، رنځپوهنې، مهندسۍ، چاپېريال پېژندنې، ارواپوهنې، فلسفې، ټولنپېژندنې او... په برخه کې د ځانګړو قاموسونو نشتوالی محسوس دی.

په همدې ډول د ژبنې وېش او تخصص پر بنسټ قاموس ليکنه نه ده پيل شوې؛ نو څرګنده ده، چې د ايتمولوژۍ له مخې لا تر اوسه په پښتو کې د کارېدونکيو لغتونو وېشنه او پېژندنه خورا ستونزمنه ده.

د يادولو وړ ده، چې د قاموس ليکنې په دې بهير کې پخوانۍ پښتو ټولنې يا اوسنۍ د افغانستان د علومو اکاډمۍ د خپل تاسيس له مهاله تر دې مهاله د همدې قاموس په ګډون (۱۶) عنوانه قاموسونه افغاني ټولنې ته د ګټې اخيستنې لپاره وړاندې کړي دي؛ ځکه خو دا وياړ يوازې د افغانستان د علومو اکاډمۍ په برخه دی.

په دې قاموس ليکنه کې د کار د بنسټ په توګه له هماغه پښتو- پښتو تشريحي قاموس څخه ګټه اخيستل شوې ده؛ خو له نورو بېلابېلو قاموسونو څخه هم ګټه اخيستل شوې ده، چې په اخځليکونو کې يې يادونه شوې ده.

زاهد پښتو- پښتو قاموس په حقیقت کې په پښتو ژبه کې د یوه لنډ: خو جامع لغوي قاموس کښنې پر لور یوه هڅه ده، چې یوازې د لغت د بېلابېلو مانااوو د راوړلو په بسنه د قاموس د پنډوالی مخنیوی شوی دی. له یوې خوا ځرنګه چې دا قاموس د لنډ او جامع قاموس د کښنې لومړنۍ هڅه ده او له بلې خوا له روږد سره سم د دانش خپرندویې ټولنې بیړې د زیاتې څېړنې او پرلپسې کتنې وخت رانه کړ؛ نو کېدای شي، چې زیاتې نیمګړتیاوې ولري. موږ مخکې له مخکې د خپل کار پر نیمګړتیاوو او پخپلې علمي کمزورۍ هم اقرار کوو. دې ته به سترګې پر لاره یاستو، چې علمي صلاحیت لرونکي فرهنګپال افغانان به د همدې لړۍ د بشپړتابه لپاره متې راونغاړي او په دې اړه به زموږ خوب و خیال ته د رښتینتابه جامه ورواغوندي.

د افغانستان د علومو اکاډمۍ له رئیس مرستیال سر څېړونکي ښاغلي عبدالباري "راشد" او د افغانستان د علومو اکاډمۍ له علمي منشي مرستیال سر څېړونکي نصر الله "ناصر" څخه زښته زیاته مننه کوم، چېددې قاموس د نسبي بشپړتابه لاره یې راته اواره کړه.

د خپل درانه استاد (چې د ژوندانه‌تر پای به یې په شاګردۍ ویاړم) محمدآصف صمیم صاحب د علمي مرستې او لارښوونې منندوی یم. د قاموس د چاپ لګښت ته په اوږې ورکولو د دانش خپرندویې ټولنې له مشر ښاغلي اسد الله دانش څخه هم یوه نړۍ مننه کوم.

په پای کې د پښتو څېړنو د نړیوال مرکز له غړي مرستیال څېړونکي عبدالظاهر شکیب او د ژبو او ادبیاتو د مرکز له غړي مرستیال سر څېړونکي مسافر ریس خېل څخه هم د زړه له تله مننه کوم، چې پر پروف لوستنې سربېره یې د ګرامري حالتونو، خج او د فونیمیک تلفظ د سمونې په برخه کې راسره زښت زیات زیار وګاله.

ټول دې روغ او خوښ اوسي، بریاوې یې په برخه
د اصیل افغاني فرهنګ د غوړېدا او ځلېدا په هیله

زاهد مشوانی
د کب ۱۲مه جلال آباد، مجبور آباد.

# اخځونه


۱ـ افغان قاموس (دري ـ پښتو)، پښتو ټولنه ـ ۱۳۳۶ل ـ دولتي مطبعه.

۲ـ المنجد، ګلبر خان (مولوي) (عربي ـ پښتو)، تاج کتبخانه ـ پېښور ـ ۱۴۲۲ق.

۳ـ پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس، د افغانستان د علومو اکاډیمي څپاره کړي څلور واره ټوکه، (۱۳۵۸ـ۱۳۶۵ل)، د لوړو او مسلکي زده کړو مطبعه، دولتي مطبعه.

۴ـ پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس، بشپړ څلور ټوکیز (میډیوټیك)، ۱۳۸۳ل.

۵ـ پښتو سیند ـ مومند محمد ګل ـ د ساپي پښتو څېړنو او پراختیا مرکز ـ دویم چاپ، ۱۳۸۲ل.

۶ـ پښتو سیندګی (نوېزونه) ـ زیار مجاور احمد (پوهاند)، د ساپي پښتو څېړنو او پراختیا مرکز، ۱۳۷۸ل.

۷ـ پښتو سیندګی ـ زیار مجاور احمد (پوهاند)، د پښتو پانګې ملګري، ۱۳۷۳ل.

۸ـ پښتو قاموس، (پښتو ـ دري)، (دواړه ټوکه) پښتو ټولنه، ۱۳۳۰ـ ۱۳۳۳، د کابل عمومي مطبعه.

۹ـ د برو او لرو پښتنو د ژبنیو اندولونو قاموس، صوفي جمعه خان، دانش خپرنځی، ۱۳۷۸ل.

۱۰ـ د پښتو ژبې لیاره، مومند محمد ګل، بلخ، د رښتیا شرکت، ۱۳۱۷ل، لاهور.

۱۱ـ د عبدالحمید مومند فرهنګ، صمیم محمد آصف، احسان خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۱ل.

۱۲ـ د لرغوني شاعرۍ کرښې، صمیم محمد آصف، د پښتني فرهنګ د ودې او پراختیا ټولنه، جرمني، ۱۳۷۸ل.

۱۳ـ زړه پانګه، دوست دوست محمد شینواری، سر څېړونکی ـ د افغانستان د علومو اکاډیمي، ۱۳۶۳ل، دولتي مطبعه.

۱۴ـ ژبپانګه، دوست دوست محمد شینواری، دانش خپرنځی، ۱۳۷۷ل.

۱۵ـ ظفر اللغات، ظفر بهادر شاه کاکاخېل، یونیورسټي بك ایجنسي.

۱۶ـ غیاث اللغات و منتخب اللغات، غیاث محمد غیاث الدین، مکتبة الحبیبیة، ارګ بازار، کندهار.

۱۷ـ فرهنګ عمید، عمید حسن، موسسه انتشارات امیر کبیر، تهران، ۱۳۶۱ل.

۱۸ـ فرهنګ فارسي، محمد عبداللطیف ډاکتر، کتابستان پبلیشنګ کمپني، اردو بازار، لاهور.

۱۹ـ فرهنګ فارسي معین، معین محمد معین (ډاکتر)، ارمان نو، ۱۳۸۱ل، تهران.

۲۰ـ کوچیانی پانګه، کوچی خان خادم، دانش خپرنځی، ۱۳۷۹ل.

# د تلفظ لارښود

| معمول توري | فونیمیک توري | مثالونه | فونیمیک تلفظ |
|---|---|---|---|
| ا | a | سر، اتل | sar, atal |
| | | شپه | špa |
| | | آس، وياړ | ās,wyāṛ |
| آ | ā | سبا | sabā́ |
| ب | b | بار | bār |
| پ | p | پښتو | paṣtó |
| ت | t | تور | tor |
| ټ | ṭ | ټول | ṭol |
| ث | s | ثابت | sābít |
| ج | j | جوړ | joṛ |

| معمول توري | فونیمیک توري | مثالونه | فونیمیک تلفظ |
|---|---|---|---|
| چ | č | چاکو | čākū́ |
| ځ | ǰ | ځای | ǰāy |
| څ | c | څوک | cok |
| ح | h | حاصل | hāsíl |
| خ | x | خور | xor |
| د | ḍ | دود | dod |
| ډ | d | ډېر | ḍer |
| ذ | z | ذکي | zakí |
| ر | r | رپ | rap |

| معمول توري | فونيميک توري | مثالونه | فونيميک تلفظ |
|---|---|---|---|
| ړ | r | ړوند | ṛūnd |
| ز | z | زوړ | zoṛ |
| ژ | ž | ژوند | žwand |
| ږ | ẓ | ږغ | ẓəg |
| س | s | سم | sam |
| ش | š | شلومبې | šlūmbé |
| ښ | ṣ | ښاغلی | ṣāğəlay |
| ص | s | صادق | sādíq |
| ض | z | ضرر | zarár |
| ط | t | طاقت | tāqát |
| ظ | z | ظالم | zālím |
| ع | ʕ | عادت، وعده<br>موضوع | ʕādát,waʕdá<br>mawzóʕ |
| غ | ğ | غمی | ğamáy |
| ف | f | فاصله | fāsılá |
| ق | q | قانون | qānū́n |
| ک | k | کار | kā́r |
| ګ | g | ګډ | gaḍ |

| معمول توري | فونيميک توري | مثالونه | فونيميک تلفظ |
|---|---|---|---|
| ل | l | لاس | lās |
| م | m | موړ | moṛ |
| ن | n | نن | nən |
| ڼ | ṇ | منه | maṇá |
| و | w | واده<br>ژړوال | wādə́<br>žəṛawā́l |
| هـ | h | هر<br>سهار | har<br>sahā́r |
| ي | y | يور<br>مېلمستيا<br>وياړ | yor<br>melmastyā́<br>wyā́ṛ |
| و | o | کور، اوبه | kor,obə́ |
| و | u | سور | sūr |
| پېښ | u | سُر (په موسيقي کې) | sur |
| زېر | i | ابره<br>امضا | ibrá<br>imzā́ |
| ي | i | وير<br>تېر | wir<br>ter |
| ې | e | مستې<br>سړې | masté<br>saṛáy |
| ی | ay | هېلی | helə́y |
| ۍ | ay | نيکه | nikə́ |
| زورکی | a | زره | zrə́ |

# لنډون

## اول- طبيعت، اجتماعي او بشري علوم او فنون:

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اد. | ادبي اصطلاح | تي. | تياتر | سي. | سياست | ل. | لنډى |
| اق. | اقتصاد | جر. | جراحي | ط. | طباعت | ل.م. | لغوي مفهوم |
| ال. | الهيات (مذهب) | جغ. | جغرافيه | ط.ب. | طبيعي علوم | ل.ي. | لرغونى يونان |
| ان. | اناتومي | جم. | جمناستيک | طب. | طب | مث. | مثلثات |
| انج. | انجنيري | جيا. | جيالوجي | عر. | عروض | من. | منطق |
| با. | باکتيريالوجي | حق. | حقوق | عس. | عسکري | منر. | منرالوجي |
| بد. | بديع | خ. | خطاطي | عک. | عکاسي | مو. | موسيقي |
| بر. | بريښنا (برق) | ډيپ. | ډيپلوماسي | فز. | فزيکس | مي. | ميکانيک |
| ب.ش. | بيوشيمي | رو. | روحيات (سايکالوجي) | فزيو. | فزيولوجي | ميت. | ميتودولوجي |
| بيا. | بيالوجي | ري. | رياضيات | فل. | فلسفه | نج. | نجوم |
| پ.ک. | پښتني کلتور | زو. | زولوجي | فق. | فقه | نق. | نقاشي |
| تا. | تاريخ | ژ. | ژورناليزم | ک. | کيميا | هـ. | هندسه |
| تص. | تصوف | سپ. | سپورټ | گ. | گياه پېژندنه | هن. | هنر |
| تع. | تعريف | سو. | سوسيالوجي | گر. | گرامر | هو. | هوا پېژندنه |

## دوهم-ژبني او گرامري مخففات:

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اد. | ادات | را. | راتلونکى زمان | فا. | فاعل | محا. | محاوروي |
| اص. | اصطلاح | ربط. | ربط | فاع. | فاعلي حالت | مخ. | مختاړى |
| اصلج. | اصلي جز | ژ.ب. | د ژبپوهنې اصطلاح | ق. | قيد | مص. | مصدر |
| او. | اوسنى زمانه | س. | سفکس | گر. | گرامر | مف. | مفعولي حالت |
| پ. | پخوانۍ کليمه | ښځ. | ښځينه نوم | ل. | لازمي | ن. | نوې کليمه |
| پر. | پريدلوگ | ص. | صفت | لهج. | لهجوي | نب. | نه بدلېدونکى |
| تېر. | تېره زمانه | ض. | ضمير | م. | مفرد | ند. | ندائيه |
| ج. | جمع | عد. | عدد | ما. | ماضي | نر. | نارينه نوم |
| جن. | د جنس نوم | ف. | فعل | مت. | متعدي | ور. | روستاړى |
| | | | | مج. | مجازي | وګ. | وګورئ |

# لیک نښې

**(٣) عدد په دوو لیندکیو (قوسین، پېرن تیسیس، پارانتز) کې:**

الف- د هغو دوو یا څو لغاتو د پاسه لیدل کېږي چې په شکل یا تلفظ کې سره یو او ماناګانې یې سره بېلې وي- د دغه راز لغاتو او اصطلاحاتو د بېلولو لپاره [(١)، (٢)]،... عددونه کار شوي دي؛ لکه: کوږ [(١)] (koz) ص. نر.م. ناسمه، غیرمستقیم.

کوږ [(٢)] (koz) نر.م. کفتار، یو حیوان دی.

ب- د موسیقۍ پر سُرو پورته یا کښته که دغسې عددونه لیدل کېږي، هغه د سپتک (اوکتاو) ګڼه ښکاره کوي.

سا [(١)] ری [(١)] ګا [(١)] ...لومړی سپتک

سا [(٢)] ری [(٢)] ګا [(٢)] ...دوهم سپتک

سا [(٣)] ری [(٣)] ګا [(٣)] ...لومړی سپتک

پ- کله کله د لومړنیو تقسیماتو د ښودلو لپاره؛ نور تقسیمات یې داسې وي: ١) ١ - اول... الف-

**٣- عدد او بېلنۍ:** الف- د دوهم وېش د ښودلو لپاره: ١ - ٢ - ٣ - ٤ - ...

ب- د یوه لغت یا اصطلاح د ماناګانو یا تعریفو د تعدد د ښوونې لپاره.

**٣) عدد او کینه لیندکۍ:** الف- د لومړني وېش د ښوولو لپاره: ١) ٢) ٣) ...

د وروستي وېشو ترتیب یې داسې دی: ١ - اول- الف- ،

ب- د مترادفاتو د هرې دلې او همدارنګه د څو تعریفو د ګڼې لپاره: ١) ٢) ٣) ...

**، ترونی (کامه، چپه پېښ):** الف- د مترادفو ماناګانو د بېلولو لپاره.

ب- د هغو توکو د بېلولو ترمنځ چې مخکې یې ځنډکی (سیمي کولن) راغلی وي.

پ- د نومو... ترمنځ.

**؛ ځنډکی (سیمي کولن):** الف- د یوه لغت یا اصطلاح د مترادفو ماناګانو او شرحې ترمنځ.

ب- د یوه لغت د دوو یا څو شرحو د بېلولو لپاره.

پ- د مرکبو او همدارنګه مختلطو جملو په منځ کې.

ت- د لېست دوله جملو یا شرحو ترمنځ.

ټ- د دوو یا څو تعریفو ترمنځ چې په (١)، (٢) ... یا ١)، ٢) ... یا ١ - ، ٢ - ... یا اول- ، دوهم- ... یا الف- ، ب- ... سره بېل شوي وي.

ث- د ماناګانو او ارتباطي اصطلاح (عنوان) ترمنځ.

ج- د دوو مثالو ترمنځ.

چ- د علمي یا هنري تعریف څخه د عامو یا متداولو ماناګانو د بېلولو لپاره.

ځ- د عدد او د هغه له تلفظ څخه وروسته چې شرحه یې پیل کېږي.

## ( ) دوې لیندکې (قوسین، پېرن تیسیس، پارانتز):

الف- د (یوه) لغت د (یوه) فونیمیک تلفظ لپاره؛ لکه: هواد (həwā́d).

ب- د یوه نوم د جمع د ښوولو لپاره؛ لکه: خپلواکي (ج. خپلواکۍ).

پ- دالتباس د مخنیوي په غرض د یوې مانا دفونیمیکي تلفظ لپاره؛ لکه: کوټه (kwáta).

ت- د مخففو لپاره؛ لکه: (پ. ک.)، (ا.س.)، (فل. من.)...

ټ- د ځینو نومو او عددو لپاره.

ث- په لهجوي توپیر کې د اختیاري واول، کانسونېنټ او مرکب مصوت د ښوولو لپاره؛ لکه [p(a) rā́x], [u(m) mát]

ج- خالي لیندکې، د هغو لغاتو په مقابل کې لیدلی کېږي چې تلفظ یې لاس ته نه وي راغلی.

[ ] براکیټونه: د تلفظي تعدد او لهجوي توپیر ښودلو لپاره: [ar(é,yá)ǰ], [p(o,ū)ṣtál], [x(w,wa)la), [x(á,ū́)ls]

ً خج (سټرېس، اېکسېنټ): د هغه واول یا دیفتانګ پرلومړي توک باندې دغه نښه لیدله کېږي چې د اواز نسبتاً زیات فشار لري، لکه توره (tū́ra). که دغه فشار د لهجوي توپیر له امله یا په یوه ټاکلي لهجه کې پر دوو واولو باندې وي، او یا د تاکید او مقصود په اساس یوه کلیمه څو خجه لري، نو دوه درې ځایه خج ورکړ شوی دی. په ځینو کلیمو کې د اصلي او فرعي یا پرایمري او سېکنډري خج مراعات هم شوی دی؛ لکه: albáta. په متن کې ځینې کلیمې هم خج لري؛ داسې: توره، کوټه، نارې او نور.

## ببلنۍ (ډېش، کش):

الف- د ماناګانو او شرحو په پای کې چې مربوط لغت یا اصطلاح د کوم بیت، متل، ګردان، مثال یا فولکلوري موضوع... په ترڅ کې راځي.

ب- د یوه لغت یا یوې علمي یا هنري اصطلاح د ماناګانو په پای کې د دغې اصطلاح څخه مشتق شوي نور نومونه، اصطلاحات، وېشنې او ډولونه؛ لکه: سرمایه...- ثابته سرمایه، خصوصي سرمایه، شخصي سرمایه. یا : حد...- تام حد، کامل حد، ګډ حد، ناقص حد.

پ- د معترضې جملې په سر او پای کې.

ت- د اضافي شرحې او یادونې په سر کې.

ټ- د ( // یا ایضاً) پر ځای؛ لکه: قیمت- عادي قیمت، فرضي-، حسابي-، حمایتي- او نور.

ث- په موسیقي کې د ماترې یا د تال د ځنډ لپاره- هر څونه ډېشونه چې لیدل کېږي، هغونه ځنډ ښیي.

ج- په موسیقي کې د ارمزنیې (باجه) د تورو پردو د ښودلو لپاره؛ لکه: رې، ګا، ما، دا نې، دغه مطلب کله کله د ځینو راګو د تېور د سُرو په پېژندګلوۍ کې په اوږده ې (رې، ګې، مې) او د کوما [illegible] سرونه په الف

(را، گا، ما، دا) باندې افاده شوي دي. ، همدارنګه تر عدد لاندې د ښش سپتک (اوکتاو) ښيي.

ج- د (≈ یا ایضاً) پر ځای.

/ وېرګول (بار):

الف- د یوې کلیمې د دوو ګرامري حالتو یا دوو او دربو لهجوي توپیرو ترمنځ؛ لکه: چای... نر.م. /جن.

یا ریاسي... ص.نب. / نر.م.

ب- د (کامه[۱۲]) د کلیمې د شرحې پای وګورئ.

- منبلوونکی (هایفن):

الف- د یوې کرښې په پای کې چې فونیمیک تلفظ نه سره ځایېږي او دوې برخې کېږي، نو د لومړی برخې په پای کې هایفن کار شوی دی.

ب- د مرکبې کلیمې د ټوکو ترمنځ.

نورې نخښې:

په موسیقي کې (O) د خالي نخښه، (ɸ) د سم نخښه او (ɸ) د تالي نخښه ده، همدارنګه د لګه، ګـر، پلت، دړت، برام، لګه برام او له برام، درت برام او اندرت نخښې دا دي: ا ء ہ اَ آ ہِ ہ .

۷ یا ۷ د ساکن توري نخښه.

ـَ زورکی

~ د (≈ یعني ایضاً) پر ځای.

ٶ د ستونیز تمبدنګ (glottal stop) نخښه؛ لکه په qur, án کې.

« » په قاموس کې (کوټېشن) د (ح) ماده وګورئ.

° درجه

دقیقه

ثانیه

؟ د شک نخښه

* د شرحې په پای کې پایلیک وګورئ.

... او داسې نور، دوام لري، صرف نظر.

# دیِز

b بیمول

II بکار، ناتوریل

***

*

# آ

**آ** (ā̆) نر.م. ١) د عربي او پښتو ژبو د الفبې لومړنی توری؛ ٢) د ندا توری دی چې د مخاطب اسم په سر کې راځي لکه: آ محموده! آسړیه!

**آب** (āb) نر.م. ١) پت، حیا، عزت، ابرو.

**آبا** (ābā́) وګ. ابا.

**آباد** (ābā́d) ص. نر.م. ١) ودان؛ ٢) کرل شوی، سمسور.

**آبادي** (ābādí) ښځ.م. ودانی، سمسورتیا.

**آبادېدل** (ābādedә́l) مص. ل. ١) ودانېدل؛ ٢) سمسورېدل.

**آبدار** (ābdā́r) ص. نر.م. مخور، ښاغلی، پتیالی، محترم، د عزت خاوند، آبداره.

**آبدارول** (ābdārawә́l) مص. مت. ځلول، جوهر ورکول، اوبه ورکول.

**آبداري** (ābdārí) ښځ.م. ١) مخور توب؛ ٢) جوهر لرنه؛ ٣) اوبه لګول.

**ابدارېدل** (ābdāredә́l) مص. ل. ځلېدل، جوهر پېدا کول.

**آبدان** (ābdā́n) نر.م. اودان، د اوبو د ساتلو لپاره یو ډول فلزي لوښی.

**آبدست** (ābdást) وګ. اودس.

**ابرو** (ābró) ښځ.م. ١) پت، حیا، عزت؛ ٢) شرم؛ ٣) شهرت، نوم، نامداري.

**آبرو** (ābrá́w) نر.م. دهنه، ورخ، نغول، د اوبو د تېرېدلو موری، چورن.

**آبي** (ābí) ص. نب. ١) آسماني (رنګ)؛ ٢) اوبي ځمکه، د للمي ضد.

**آبېڅې** (ābecé) الفبې، الف بې تې، الفباء.

**آپت** (āpát) نر.م. (ج. آپتونه) ١) تندر، تکه، آسماني بلا.

**آتشک** (ātišák) نر.م. اوربلک، د نباتاتو یو ډول ناروغي ده.

**آثار** (āsā́r) نر. م. ج. د اثر جمع.

**آخر** (āxír) ص. نب. ۱) وروستی، ترڅنګ، ترشا؛ ۲) پای، بنځ.

**آخرت** (āxerát) نر. م. هغه دنیا، عقبا، ابدي دنیا.

**آخري** (āxirí) ص. نب. وروستی، ترڅنګ، ترشا.

**آخون** (āxun) نر. م. آخوند، ملا، استاذ..

**آداب** (ādā́b) نر. ج. و گ. ادب[1].

**آدینه** (ādiná) ښځ. م. جمعه، د اوونۍ اوومه ورځ.

**آر** (ār) آره، ربښتینی، معیار، اصل، قاعده، بنیاد.

**آراء** (ārā́) ښځ. ج. رایې، وړاندیزونه، د رای جمع.

**آرامتیا** (ārāmtyā́) ښځ. م. و گ. آرامي.

**آرامځای** (ārāmǰā́y) نر. م. هدیره، آرامگاه.

**آرام سۍ** (ārāmsə́y) د پوځي ټولګي د آرام بولۍ، استراحت.

**آرام چوکۍ** (ārāmčawkə́y) ښځ. م. څنګیزه چوکۍ، کوچ، بازو واله یا لبچیزه چوکۍ.

**آرامول** (ārāmawə́l) مص. مت. ۱) دمه ورکول، هوسا کول؛ ۲) کرارول، چوپول، غلی کول.

**آرامي** (ārāmí) ښځ. م. هوسایي، کراري، ببغمي.

**آرامېدل** (ārāmedə́l) مص. ل. ۱) هوسا کېدل، دمه کېدل؛ ۲) ببغمه کېدل، کرارېدل.

**آرپورویی** (ārpōrwayə́y) په آره بڼه، دخیل ویی (لغت)، واژه دخیل.

**آرپوهه** (ārpōhá) د وییونو د ریښې راپېژندنې علم، د اشتقاق علم.

**آرپوهیز** (ārpōhíz) د آرپوهې اړوند، اتمالوجیکل.

**آرپېر** (ārpér) اصلي حالت (گرامر).

**آرشمېر** (āršmer) اصلي شمېر، اصلي عدد.

**آرکړ** (ārkə́ṛ) اصلي فعل، فعل اصلي.

**آرلیک** (ārlik) اصلي لیکنه، لاسکښنه، مسوده.

**آرمل** (ārmə́l) اصلي ملګری، سهي دوست.

**آرو اصل** (āruasə́l) ارواصیل، اروربښتیني، اصل و پرنسیپ.

**آروپاګروهی** (ārupāgrohə́y) نر. م. اروپا پال، اروپايي مشرب.

**آرو ربښتیني ژبني توکونه** (ārorestini žabani tōkuná) د ژبې اصلي توکي.

**آره** (ā́ra) ښځ. م. آر، اصل، بنسټ، اساس، تاداو.

**آره غونډله** (āragondlá) اصلي جمله، اصلي ساده جمله.

**آړ** (ā́ṛ) نر. م. بندېز، خنډ، سد، مانع، شرط.

**آړوتی** (āṛwátay) مشروط، له قید و شرط سره.

**آړوتی اړخ** (āṛwátayāṛx) نر. م. شرطي اړخ، شرطي وجه، شرطي فعل.

**آړوتی خج** (āṛwátay xáj) مشروط فشار، چې له ګاونډیتوبه منځته راځي.

**آړوتې غونډله** (āṛwátegondlá) شرطي جمله، شرطیه جمله.

**آړوتی کړ** (āṛwátaykə́ṛ) شرطیه فعل، فعل شرطي یا شرطیه.

**آړه** (ā́ṛa) ښځ. م. ۱) بې لارې، له دین څخه ګرځېدل؛ ۲) کیل، کیله، داړېې، کراک، د ییوې کیل.

**آزاد** (āzā́d) ص. نر. م. ج. ۱) خپلواک، بې قیده، ساهو، ساوو، خپلسری، د بندي ضد.

**آزادانه** (āzādāná) ق. په خلاص مټ، په ارت زړه، په خپلواک ډول، په آزاده توګه.

**آزادول** (āzādawə́l) مص. مت ۱) خپلواکي ورکول، خوشې کول، پرېښوول؛ ۲) رخصتول.

**آزادي** (āzādí) ښځ. م. خپلواکي، خلاصی، د قید ضد، له بند یا محدودیت او مرېتوب نه وتنه.

**آزادېدل** (āzādedə́l) مص. ل. ۱) خپلواک کېدل، خلاصېدل، خوشې کېدل، ابله کېدل.

**آزار** (āzā́r) نر. م. ۱) ربړ، کړاو، ځور؛ ۳) ښېرا.
**آزارګټلی** (āzārgaṭə́lay) فا. نر. م. ۱) ځوروونکی، ربړوونکی، زیان رسوونکی؛ ۲) مف. نر. م. هغه څوک چې ښېراوې ورته شوې وي.
**آزاردبه** (āzārdabá) ښځ. م. د کوچنیانو یو ډول ناروغي ده.
**آزوت** (āzū́t) نر. م. نایټروجن، د یوه بې رنګه او بې بویه غاز نوم.
**آژانس** (āžā́ns) نر. م. نماینده ګي، د خبر اخیستلو او رسولو ځانګه.
**آس** (ā́s) نرم. م. (ج، آسونه)، یو ښکلی ځاروی دی چې د سپرلۍ لپاره روزل کېږي.
**آستازلیک** (āstā́zlik) کفالتلیک، وکالتلیک، کفالتنامه، وکالتنامه.
**آستانه** (āstāná) ښځ. م. درشل، بارګاه، دزګاه.
**آسپه** (āspá) ښځ. م. د آس مؤنث.
**آسسپور** (āsspōr) آسسوار، سوارکار.
**آسمنډه** (āsmanḍá) آسځغل، د آس د یوه ځغل هومره واټن.
**آش** (āš) نر. م. ۱) یو ډول خواړه دي؛ ۲) خور ورکول، اوم پوستکی په مالګې، رنګ او... سره پخول.
**آغاز** (āğā́z) نر. م. پیل، شروع، لاس پورې کول.
**آغل** (āğə́l) مف. نر. م. ۱) اغېزل شوی، اغال شوی، ګډ کړی شوی، اخښل شوی؛ ۲) نر. م. آغل، پنډغالی، جار، ګاړه؛ ۲) شپول، ګومبته.
**آغلی** (āğə́lay) ص. نر. م. (ج. آغلي) ۱) ښکلی، ښایسته، ګلالی، ډولي؛ ۲) ښاغلی، منلی.
**آغي** (āğe) ښځ. م. ۱) رڼا، روښنایي، ۲) خوښي.
**آغېل** (āğel) نر. م. وګ. آغل ۲).
**آفاقي** (āfāqí) ص. نب. ۱) نړیوال، عیني، حقیقي؛ ۲) اضافي معلومات، زیاته پوهه.

**آفت** (āfát) نر. م. ۱) ټکه، تندر؛ ۲) کړاو، زحمت، تکلیف، مصیبت، رنځ.
**آفرین** (āfarín) نر. م. شاباس، شاباسی، هڅوونکی ویی دی.
**آفسېټ** (āfséṭ) نر. م. د چاپ او طباعت یو ډول ماشین دی.
**آل** (ā́l) نر. م. ۱) سوربخن، سور؛ ۲) په پښتو کې د اولاد له کلیمې سره یو ځای په ترکیبي ډول استعمالېږي: آل اولاد.
**آلات** (ālā́t) نر. ج. د کار توکي، دکار افزار، سامان آلات.
**آلایش** (ālāyíš) ص. نر. م. ۱) ککړتیا، ناولتیا، چټلي؛ ۲) عیب، ضرر، نقص، زیان.
**آله** (ālá) ښځ. م. وسیله، کالی، رچ، اوړه، د کاریګر د کار او زار.
**آماده** (āmādá) ښځ. م. وګ. تیار.
**آماده ګي** (āmādagí) ښځ. م. وګ. تیاری.
**آمر** (āmír) نر. م. مشر، امر کوونکی، فرمان ورکوونکی، د یوې ادارې مشر.
**آمرنې** (āmr ə́ne) نر. م. ټاکنې، انتخابات.
**آمریت** (āmıriyat) نر. م. ۱) واک، حاکمیت، تسلط؛ ۲) سیادت، مشرتوب.
**آمودود** (āmūdū́d) نر. م. چوپتیا، کراري، آرامي.
**آن** (ā́n) نر. م. ۱) شیبه، لږ وخت، لحظه؛ ۲) وخت؛ ۳) سیک، ځواک، متره، توان.
**آوېجه** (āwéjá) ښځ. م. ۱) ځمکه، ملک، ولکه؛ ۲) خاوره، نړۍ، دنیا.
**آیت** (āyát) نر. م. (ج. آیتونه) ۱) نښه، علامه، نښکه؛ ۲) الهي کلام.
**آیه** (āyá) ښځ. م. (ج. آیې) ۱) وییه، هګۍ، هویه، اویه؛ ۲) وګ: آیت.

# ا

**ا** (alap, alif) نر. م. ١) د پښتو الفبې دويم توری، چې ابجدي ارزښت يې (١) دی؛ ٢) د ځينو ساکښو او غير ساکښو نومونو په پای کې د مفرد مؤنث نښه ده لکه: خندا، ژړا، وينا.

**ابا** (abā) ١) پلار؛ ٢) نيکه، د پلار پلار؛ ٣) لوی، مشر.

**ابات** (abāt) ص. نر. م. ج. وګ. آباد.

**اباتوالی** (abātwālay) نر. م. ١) ودانی؛ ٢) بډايي؛ ښېرازي.

**اباتوب** (abātób) نر. م. پلارتوب، پلاروالی.

**اباتول** (abātawə́l) مص. مت. ودانول، ابادول، جوړول، ښېرازول.

**اباتي** (abātí) ښځ. م. (ج. اباتی) ١) وداني، آبادي ٢) سمونه، سېدونه.

**آباتېدل** (abātedə́l) مص. ل. ١) ودانېدل، ابادېدل، جوړېدل؛ ٢) اوسېدل، مېشتېدل.

**اباته اباتي** (abāta-abātí) ښځ. م. ١) موړوالی؛ ٢) د اوسېدونکيو ډېروالی.

**اباخېل** (abāxél) نر. م. ج. ١) پلرني خپلوان؛ ٢) د پښتنو د يوه خېل نوم دی.

**اباګنۍ** (abāganə́y) ښځ. م. پلارګنۍ، د پلار د لوري خپلوان.

**ابتدا** (ıbudā) ښځ. م. بريد، شروع، د کار پيل، سرغه، له ابتدا نه، په ابتدا کې.

**ابتدايي** (ıbudāyí) ص. نب. لومړنی، مقدماتي.

**ابتکار** (ıbtıkār) نر. م. نوښت، نوې ايستنه، ابداع.

**ابته** (abatá) ص. نب. بته، خوار.

**ابتهاج** (ıbtehāj) نر. م. خوشالي، خوښي.

**ابجد** (abjád) نر. م. د عربي الفبې د تورو پخوانی ترتيب چې دا دي: اب ج د هـ و ز ح ط ی ک ل م ن س ع ف ص ق ر ش ت ث خ ذ ض ظ غ. له دغو

حرفونو نه یې اته جوړې شوې کلیمې رامنځ ته کړې دي: ابجد، هوز، حطي، کلمن، سعفص، قرشت، ثخذ، ضظغ. د دغو تورو هر یوه ته یو یو عدد ټاکل شوی چې د ابجد یا جمل حساب په بولي: الف یو، ب ۲، ج ۳، د ٤، هـ ٥، و ٦، ز ۷، ح ۸، ط ۹، ی ۱۰، ک ۲۰، ل ۳۰ م ٤۰، ن ٥۰، س ٦۰، ع ۷۰، ف ۸۰، ص ۹۰، ق ۱۰۰، ر ۲۰۰، ش ۳۰۰، ت ٤۰۰، ث ٥۰۰، خ ٦۰۰، ذ ۷۰۰، ض ۸۰۰، ظ ۹۰۰، غ ۱۰۰۰

**ابد** (abád) ق. تل، مدام، همېش، تل تر تله، تر ابده.

**ابداع** (ʼibdā́ʻ) ښځ. م. نوې ایستنه، نوښت، نوښت، نوچار، ابتکار.

**ابدال**[1] (abdā́l) ۱) د بدل جمع، ښه او شریف خلک؛ ۲) ولي، بزرګ، خلیفه، اودال.

**ابدال**[2] (ʼibdā́l) نر. ج. بدلول، الېشول، عوضول.

**ابدي** (abadí) ص. نب. د تل لپاره، همېشني، چې پای نه لري، تلپاتې، ابدي ژوند.

**ابرا** (ʼibrā́) ښځ. م ۱) تېرېدنه، پرېښوونه؛ ۲) ښښنه، بخښنه، عفوه.

**ابرک** (abrák) نر. م. شګې ګل، سپلګه، رنوکی، رنکی، شګرګل، سپینه پوړیزه تیږه.

**ابرومن** (abromán) ص. نر. م. عزتمن، مخور، پتیالی، سپېڅلی.

**ابره**[1] (ʼibrá) ښځ. م. ۱) د ځمکې حاصل، د پټي فصل او غله؛ ۲) ګټه، سود، فایده.

**ابره**[2] (abrá) ښځ. م. ۱) د کالیو نوم؛ ۲) د جامې مخ؛ ۳) یو ډول رنګه کاغذ.

**ابک** (abák) نر. م. د ابا د کلیمې تصغیري شکل دی، چې کوچنیان یې د ګرانښت او درنښت له مخې و پلار یا بل مشر ته وایي.

**ابل**[1] (abál) نر. م. د (هغه بل) لنډ شکل دی.

**ابل**[2] (ʼibál) ص. نر. م. ۱) لوڅ، بربنډ - د پښې له کلیمې سره د هر کارېږي؛ ۲) بې وسه، خوار.

**ابلاغ** (ʼiblā́ğ) نر. م. رساوی، رسول، خبرول - د پیغام او یا لیک رسول.

**ابلاغیه** (ʼiblāğyá) ښځ. م. رسونه، خبرونه، څرګندونه، رسمي خبرونه.

**ابلق** (abláq) ص. نر. م. و ګ.: ابلک.

**ابلک** (ablák) ص. نر. م. (ابلق) ۱) برګ، کمر، دوه رنګه شی؛ ۲) دوه مخی، ښوی، منافق.

**ابلوڅ** (ablóc) ص. نر. م. زلموټی، ژنکی، پوړ، ځوانکی، مېراني او ژنېتوب ته نېږدې.

**ابلون** (ablón) نر. م. اوبلن.

**ابله** (ablá) ص. نب. بېړا، ناپوه، بوله، ناپوهه.

**ابلیس** (ʼiblī́s) نر. م ۱) شیطان؛ ۲) چوغل، چوغلګر وران کاری.

**ابوټلی** (aboṭálay) ص. نر. م. ټول، پوره، بشپړ، (دا کلیمه د خوراکي شیانو لپاره راځي).

**ابوس** (abū́s) نر. م. د توپچي قواوو یو ډول درنه وسله ده، اوبوس توپ.

**ابهام** (ʼibhā́m) نر. م. پټوالی، ناڅرګند تیا، پټ ساتل.

**ابۍ** (abə́y) ښځ. م (ج. ابۍ ګانې) د ابا مؤنث شکل، د مور لپاره د خطاب کلیمه.

**اپرا**[1] (aprā́) نر. م. ۱) دېب، دېو، یو خیالي او افسانوي موجود؛ ۲) ص. نب. غټ، مضبوط.

**اپرا**[2] (opərā́) نر. م. هغه ننداره ده چې له ساز او آواز سره وي، هغه تیاتر چې په هغه کې هنرمندان شعر او سندره وایي.

**اپسډنډۍ** (apasḍanḍə́y) ښځ. م. د هلکانو او وړوکو لوبه.

**اپل** (apə́l) نر. م. و ګ. ابل.

**اپلت** (aplát) نر. م. ۱) هغه سړی، چې خوشې او چتې خبرې کوي؛ ۲) پرتې ويونکی.

**اپلتې** (apláte) ښځ. ج. ۱) اپلاتې، پرتې؛ ۲) چتې او خوشې خبرې، سپکې خبرې.

**اپوته** (apūtá) ص. نب. اړولی، پرمخ، پرېل مخ اړولی، نسکور، چپه.

**اپه** (apá) ښځ. م. هڅه، لټون، ډونډ، تلاش.

**اپه لټه** (apaláṭa) ښځ. م. هاندو هڅه، هلې ځلې، منډې ترړې.

**اپي** (apí) نر. م. ۱) ښامار، لوی مار، ستر منګور، ۲) تورمار، افعي.

**اپېلل** (apelə́l) مص. مت. تېرول، نغړل، نغرل.

**اپين** (apín) نر. م. اپيم، تارياک، افيم.

**اتام** (atā́m) نر. م. ۱) خواړه، غذا، ډوډۍ، مړۍ؛ ۲) اوړه، دوړه.

**اتڅنډ** (atačánḍ) ص. نر. م. اته ګوټيز، اته کونجی، اته څنډی، مثمن.

**اتحاد** (ittihā́d) نر. م. اتفاق، يووالی، وحدت، ورورولي.

**اتحاديه** (ittihādyá) ښځ. م. (ج. اتحاديې) ټولنه، ډله، ټولی.

**اتر** (atár) نر. م. دا کليمه د خبر بيا ځلي (تکراري) تاکيدي ترکيب جوړوي لکه خبراتر.

**اترک بترک** (atrák batrák) ص. نر. م. خوار، بېوزلی، بې وسه، لغړ، څنډلی او غريب.

**اترنګ** (atráng) نر. م دنکريزو ګل.

**اترول** (atarawə́l) مص. مت. ۱) خبرول، خبر ورکول؛ ۲) څرګندول، جوتول.

**اتره** (atará) ښځ. م. ۱) کړی، يو ډول پلن لوښی چې د ګوړې چکۍ پکې جوړوي؛ ۲) تره، پوستکی، د بدن باندې برخه.

**اترېدل** (ataredə́l) مص. ل. خبرېدل، څرګندېدل، ښکاره کېدل، جوتېدل.

**اتصال** (ittisā́l) نر. م. يوځای کېدل، وصلېدل، جوختېدل، سره نښتل.

**اتفاق** (ittifā́q) نر. م. يووالی، اتحاد، د نفاق ضد.

**اتفاقي** (ittifā́qi) ق. ناڅاپه، نابېره.

**اتکاء** (ittikā́) ښځ. م. ۱) تکيه کول، ډډه لګول؛ ۲) ډاډ، ويسا؛ ۳) باور، هيله، اميد، اسره.

**اتکړۍ** (atkaṛáy) ښځ. م. ولچک، د لاس زولنې.

**اتکو** (atkó، atākó) ښځ. م. و ګ. ادکو.

**اتکۍ** (atkáy، atakáy) ښځ. م. و ګ. ادکو.

**اتګونی** (atgū́nay) ص. نر. م. هغه شی، چې اته اړخه يا څنګونه ولري.

**اتل** (atə́l) ص. نر. م. (ج. اتلان) ۱) زړور، تکړه، غيرتمن، رټ؛ ۲) پهلوان، قهرمان.

**اتلس** (atlás) نر. م. ۱) يو ډول ښوی او بريښنډ ټوکر دی؛ ۲) اطلس، نقشه - د نړۍ د هېوادونو طبيعي يا سياسي اتلس.

**اتل لېږد** (atə́llezd) نر. م. د جګړې پروخت له يو ځايه بل ځای ته عسکري ډلې لېږدول.

**اتلوال** (atalwā́l) نر. م. د جنګي عملياتو د يوه ډګر مشر او قوماندان.

**اتلواله** (atalwā́la) ښځ. م. اتلولي، قهرماني، بهادري، زړورتيا، مېړانه، اتلولي.

**اتلولي** (atalwalí) اتلواله، اتلتوب، قهرماني.

**اتمبار** (atambā́r) نر. م. تېل ماتېل، ګنه ګونه.

**اتڼ** (atáṇ) نر. م. (ج. اتڼونه)، د پښتنو ډله ييزه ولسي نڅا، د پښتنو ډله ييزې مستۍ، خوشالۍ او نمانځنې.

**اتڼه** (atəṇa) ښځ. م. (ج. اتڼې) پيلڼه، د پيل مؤنث، دهاتي ښځمنه، هتنه.

**اتوار** (itwā́r) نر. م. د يكشنبې ورځ.

**اتوب** (atób) نر. م. لښتى، اړوب، ړور، مرېوړى.

**اتونى** (atū́ṇay) نر. م. وروستى سړى، وروسته پاتې شوى سړى، تر ټولو شاته سړى.

**اته** (atá) ښځ. م. ۱) انداز، كچ، مېچ؛ ۲) كولاچ، كولاخ، وازه- د دواړو خپرو لاسونو هومره اندازه؛ ۳) احاطه، غولى، انګړ، تالار.

**اته انيز** (atáaniz) نر. م. نيمه هندي يا پاكستانى كلداره، نيمه روپۍ.

**اته ور** (atawár) ص. نر. م. ج. خرانګور، هځور، اځه ور، هغه سړى چې لاسونه يې اوږده وي.

**اته ييزه** (atayíza) اته بيتيز (شعر) مثمن.

**اتي** (atí) نر. م. (ج. اتيان) فيل، پيل، هاتي.

**اټ** (aṭ) نر. م. هټ، هټۍ، دوكان، اټۍ.

**اټارۍ** (aṭāráy) ښځ. م. برځ، برج، ټورۍ، ټاپو؛ ۲) لوړ ځاى، اوچت ځاى، ماڼۍ.

**اټال** (aṭā́l) ق. ټال، ځنډ، تم، ايسار.

**اټالول** (aṭā́lawəl) مص. مت. ۱) ټالول، ځنډول، تمول، ايسارول؛ ۲) پرېشانول، سرګردانول.

**اټاله** (aṭā́la) ښځ. م ۱) د بېكاره شيانو دلۍ؛ ۲) كور لوټي؛ ۳) يرغل؛ ٤) پرېشاني؛ ٥) پر يو ځاى د مال خرڅونه.

**اټالېدل** (aṭāledə́l) مص. ل ۱) ټالېدل، ځنډېدل، ايسارېدل؛ ۲) ځورېدل، پرېشانېدل.

**اټسكى** (aṭáskay) نر. م. ترنجى، نړۍ، پرنجى.

**اټكل** (aṭkál) نر. م. ۱) تخمين، ګومان، جاج، قياس؛ ۲) اندازه، په فكر.

**اټكلبنه** (aṭkə́lbaṇa) ښځ. م. اټكلي (ژبنى) شكل، صورت، احتمالي.

**اټكلشمېر** (aṭkə́lšmer) نر. م. اټكلي شمېر، د اندازې شمېر، تخميني عدد.

**اټكلول** (aṭkalawə́l) مص. مت. ۱) تخمينول، ګومان كول، قياسول؛ ۲) اندازه كول، معلومول ۳) مجازاً فكر كول، ګڼل.

**اټكلي** (aṭkalí) ص. نب. ۱) تخميني، ګوماني، تصوري؛ ۲) توكلي.

**اټكلېدل** (aṭkaledə́l) مص. ل. تخمينېدل، قياسېدل، اندازه لګېدل، ګڼل كېدل.

**اټكى** (aṭkáy) نر. م. ۱) موري، درځه، كولك، بخوري، كولك؛ ۲) ښځ. م. سلګۍ، رينګه.

**اټوځى** (aṭūǰay) نر. م. بازار، د دوكانونو ځاى.

**اټورۍ** (aṭūráy) ښځ. م. پټۍ، پټه، پلستر، هغه پټۍ چې پر وتلي يا بربښېدلي هډوكي باندې تړل كېږي.

**اټه** (áṭa) ښځ. م. ۱) اټۍ، د تارونو مشوره، د تارونو ګونجۍ؛ ۲) بوالهوسي؛ ۳) يو ډول جواري چې په سپينټو او هډوكو كېږي؛ ٤) نر. ج. مېده، دا كليمه د اوړو له كليمې سره يو ځاى راځي.

**اټۍ** (aṭáy) ښځ. م. دوكان، هټۍ.

**اټۍ اټۍ** (aṭáy-aṭáy) ص. نب. لېڅۍ لېڅۍ، ګونځې، تاو تاو، پېچ پېچ (تارونه).

**اټېران** (aṭerā́n) نر. م. ګوټك، څوښه، هغه څرخې چې تارونه ور باندې مرغلين او غښتل كېږي.

**اټېرانول** (aṭerānawə́l) مص. مت. په ګوټك او څرخې باندې تارونه يا لېڅۍ غښتل او تاوول.

**اټېرن** (aṭerə́n) ص. نر. م. ج. اغېړه، بد هضم، هغه څوك چې د ډېر خوراك له امله ګرڅون كوي.

**اټېرل** (aṭerə́l) مص. مت. بدهضمول، اغېرل، اړړى خوساكول، اغېرول.

**اټۍ وال** (aṭáywā́l) نر. م. دوكاندار، د اټۍ خاوند.

**اثبات** (isbā́t) نر. م. سپيناوى، ثابتونه، سرته رسونه، څه شى په ځا منل، دليل راوړنه.

**اثباتول** (ısbātawə́l) مص. مت. سپينول، ثابتول، يوه خبره په دليل برابرول.

**اثباتېدل** (ısbātedə́l) مص. ل. ثابتېدل، سپينېدل.

**اثر** (asár) نر. م. اغېز، تأثير.

**اثنا** (asnā́) ښځ. م. ۱) ترغ، ترڅ، وخت؛ ۲) وقفه، سياله، دمه، منځ.

**اجابت** (ıjā́bat) ښځ. م. قبلېدل، منل، ځواب ورکول، منظورول.

**اجاره** (ıjā́ra) ښځ. م. (ج. اجارې). ټيکه، باره، ځمکه، دوکان، باغ چې چاته د يوه ټاکلي وخت لپاره د معيينو پيسو، گټې يا حاصل په مقابل کې ورکول کېږي.

**اجاره وال** (ıjārawā́l) نر. م. باره وال، ټيکه وال.

**اجازه** (ıjāzá) ښځ. م. ۱) رخصت، له چا څخه اجازه اخيستل؛ ۲) خوښه، رضا.

**اجاڼی** (ajāṇáy) ښځ. م. ج. اجی، اجنه، هغه ښځه چې حج يې کړی وي.

**اجايي** (ajāyí) ښځ. م. ج. مېره زامنه، اميدوار، په رښتيا کې تروو ځيزونو ته لېوالتيا.

**اجباري** (ıjbā́ri) ص. نب. په زور، د زور، بې خوښې، په وچ زور، په جبر، جبري، تحميلي.

**اجتماع** (ıjtımā́ʕ) ښځ. م. ۱) ټولنه، غونډه؛ ۲) جرگه، مرکه؛ ۳) ډله، ترنډه؛ ٤) ناسته، ناستې، ټولېدنه.

**اجتماعي** (ıjtımā́ʕi) ص. نب. ۱) ولسي، ټولنيز، د ټولنې؛ ۲) ډله، ډله ييز، د ټولو.

**اجتماعيات** (ıjtımāʕyā́t) نر. م. ج. ټولنپوهنه، ټولنپېژندنه، اجتماعي علوم.

**اجتناب** (ıjtınā́b) نر. م. پرهېز، پرېز، ډډه، ځان ژغورنه.

**اجتهاد** (ıjtıhā́d) نر. م. ۱) هڅه، کوښښ، زيار؛

۲) جديت، بېړه؛ ۳) نوی والی، نوې کونه.

**اجداد** (ajdā́d) نر. ج. ۱) د جد جمع، نيکه گان؛ ۲) ورنيکه گان، غور نيکونه، نيکه او تر نيکه پورته لړی.

**اجر** (ajár) نر. م. (ج. اجرونه) ۱) بدل، عوض، باړه؛ ۲) ثواب.

**اجرا** (ıjrā́) ښځ. م. ۱) تمامول، سرته رسول، پای ته رسول، چلونه، پرځای کونه.

**اجرام** (ajrām) نر. ج. و گ. جرم.

**اجرائيه** (ıjrāíya) ص. ښځ. م. چلوونکې، اجرا کوونکې، په کار اچوونکې – قوه، کمېټه.

**اجری** (ajráy) ښځ. م. لړی، کولمې، لړماښ، لړمون او کولمې.

**اجړ** (ajáṛ) نر. م. بېزووان، بېزووالا، بېزو گډوونکی، بېزو ساتی، شادي وان.

**اجړا** (ıjṛā́) نر. م. نرښځې، ايجړا، هيجړا، ايزک.

**اجړه** (ıjṛá) ص. نب. ۱) کچه، کنجوت، بې مخه، بې ځته، خوشې، چټې؛ ۲) بوړی، بوړا.

**اجل** (ajál) نر. م. ۱) ازل، اځل، نېټه، وخت، مرگ، قضا، مړده؛ ۲) دژوند پای، د مرگ وخت.

**اجلاپ** (ajlā́p) ص. نر. م. پاک، ستره، سپېځلی.

**اجلځی** (ajalʒáy) نر. م. غوړېچنه، ځېږ غوړی، ځپې غوړی، د غوړ د پوځکی شاته ځای.

**اجماع** (ıjmā́ʕ) ښځ. م. ۱) د اسلامي ټولنې د پوهانو او عالمانو ډله ييزې فيصلې؛ ۲) پېجو، ۳) ټولنه، غونډه.

**اجمال** (ıjmā́l) نر. م. لنډيز، خلاصه، اختصار.

**اجمالي** (ıjmālí) ص. نب. لنډ، مختصر.

**اجناس** (ajnā́s) نر. ج. و گ. جنس.

**اجنبي** (ajnabí) ص. نب. پردی، بېديانی، بېگانه، اوپره، د بل ځای او بل وطن سړی.

**اجڼه** (ajáṇa) وګ. اجانی.

**اجوت** (ajwát) ص. نر. م. ج. جوړښت، یو بل سره نیږدې، یو ځای، یو له بل سره نښتی.

**اجوتول** (ajwatawə́l) مص. مت. جوړښتول، یو بل سره نیږدې کول، وصلول.

**اجوره** (ujúra) ښځ. م. اجرت، مزد، مزدوري، باړه، دکار په مقابل کې مزد اخیستل.

**اجیر** (ajír) نر. م. باړې، باړه چي، مزدور؛ موقتي مأمور، موقتي کارکوونکی.

**اچرلی** (ačárlay) نر. م. وګ. تندی.

**اچرنګه** (ačrángа) ښځ. م. کوړکوری، فاخته.

**اچموچ** (ačmúč) نر. م. یو ډول لوبه ده، اپس دتېږو، ګلی ډنډه، اوې جاوې، ادې ادې، ګاکیچ.

**اچول** (ačawə́l) مص. مت. ګرځون، استفراق.

**اچونه** (ačawána) ښځ. م. ۱) غورځونه؛ ۲) غورځونه.

**اچه** (ə́ča) ښځ. م. ۱) انګېنوم دی د وزې د شپږولو یا راڼولو آواز؛ ۲) دوه ښاخی لرګی، سکو.

**اچه کول** (ačakawə́l) مص. مت. پاکول، ستره کول، له غلې ځخه کانې شګې او بوټې بېلول.

**اچی** (ačáy) نر. م. د غواوو غوییو یو راز نسل دی.

**اچیش** (ačíš) نر. م. داسې کلیمه ده چې د غوییو د اوبو څښلو په وخت کې استعمالیږي.

**اڅکیزه** (ackíza) ښځ. م. اچه، کمچه، دیرک، هغه لرګی چې خیمه یا کیږدۍ ورباندې درېږي.

**اڅڼل** (acṇə́l) مص. مت. ۱) اوارول، برابرول، اودل، ترتیبول، سمول؛ ۲) اودل، بوڼل.

**اڅه** (acá) ښځ. م. دورانه هډوکی.

**اځی** (aʒáy) ښځ. م ۱) توکر، کپړه، ټکه؛ ۲) چجه، اځی، جالکی، ښانده.

**احاطه** (ihāṭá) ښځ. م. غولی، انګړ، په ځلور دېوالونو کې نیول شوی ځای.

**احتجاج** (ihtijā́j) نر. م. ۱) ګواښ، پروټیسټ؛ ۲) اعتراض، غبرګون.

**احتجاجلیک** (ihtijājlík) نر. م. احتجاجنامه، احتجاجخط، اعتراضلیک.

**احتراز** (ihtirā́z) نر. م. ۱) ډډه کول، ځان ژغورل، پرهېز کول، ۲) پام کول، احتیاط کول.

**احترام** (ihtirā́m) نر. م. لمانځنه، درناوی، قدر.

**احتکار** (ihtikā́r) نر. م. اناتی، دګرانی لپاره د شیانو ساتل بیا په جګه بیه خرڅول.

**احتلام** (ihtilā́m) نر. م. شیطان غولول، شیطان خطا ایستل، اودس اوبښتل.

**احتمال** (ihtimā́l) نر. م. ۱) ګومان، امکان، ښایي؛ ۲) قیاس؛ ۳) تصادف، ناڅاپه.

**احتیاج** (ihtiyā́j) نر. م. اړتیا، اړه، ضرورت.

**احتیاط** (ihtiyā́t) نر. م. پام، اتیات.

**احتیاطي** (ihtiyātí) ص. نب. ۱) پام کوونکی، محافظه کاره، ځان ژغوری؛ ۲) زېرمه ییز؛ ۳) ښځ. م. ذخیره، سپمونه، پالتو.

**احساس** (ihsā́s) نر. م. ۱) پوهېدل، حسول، احساسول؛ ۲) څه خبره زړه ته پرېوتل.

**احساساتي** (ihsāsātí) ص. نب. داحساساتو لرونکی، ویښ، بیدار.

**احساسول** (ihsāsawə́l) مص. مت. ۱) حسول، دحواسو په ذریعه له کوم شي نه د لومړني انعکاس اخیستل؛ ۲) پوهېدل، محسوسول.

**احسان** (ihsā́n) نر. م. ۱) ښېګڼه، ښېګړه، نېکي، ښه چلند، ښه سلوک؛ ۲) منت، بار.

**احصائیه** (ihsāiyá) ښځ. م. شمېرنه، ګڼنه، حسابونه، سرشمېرنه.

**احضار** (ihzā́r) نر. م. ۱) رابلنه، حاضرونه؛ ۲) راوستنه، راغوښتنه.

**احکام** (ahkā́m) نر. ج. و گ. حکم.

**احمق** (ahmáq) ص. نر. م. ناپوه، جاهل.

**احوال** (ahwā́l) نر. ج. و گ. حال.

**اخ** (áx) انګېنوم. واخ، ويش، آه. د خوښي يا خپګان او ځينو عاطفي حالاتو په وخت آواز.

**اخاړ** (axā́ṛ) نر. م. و گ. اخېړ.

**اخاړه** (axāṛá) ښځ. م. و گ. اخېړ.

**اخاڼل** (axāṇál) مص. مت. نيول، وړل.

**اخبار** (axbā́r) نر. ج ۱) خبرونه؛ ۲) نر. م. ورځپاڼه، جريده، خپرونه.

**اختر** (axtár) نر. م. ۱) خوشالي، خوښي، جشن؛ ۲) عيد.

**اختراع** (ıxtirā́) ښځ. م. نوی ايستنه، کشفونه، مپړنه.

**اختری** (axtaráy) نر. م. ۱) د لوی اختر د قربانۍ مال؛ ۲) هغه خواړه چې د زوم له کوره د نجلۍ کور ته لېږل کېږي.

**اختصار** (ıxtisā́r) نر. م. لنډيز، لنډون، خلاصه، (د خبرو، مضمون او يا ليکنو لپاره راځي).

**اختصاص** (ıxtisā́s) نر. م ۱) اړه، ربط، وقف؛ ۲) لاس لرل، بلدتيا، خاص کېدل؛ ۳) صفت، خصوصيت، مشخصات.

**اختلاط** (ıxtilā́t) نر. م. ۱) ګډونه، ګډېدنه، يو ځای کونه؛ ۲) خبري اتري، ګپ شپ.

**اختلاف** (ıxtilā́f) نر. م. ۱) توپير، بېلوالی؛ ۲) خړنج، سرنه سره خوړل، بې اتفاقي.

**اختلال** (ıxtilā́l) نر. م. ګډوډي، بې نظمي، خرابوالی، خلل پيدا کېدل.

**اختناق** (ıxtinā́q) نر. م. ترېتول، خپه کول.

**اخته** (axtá) ص. نب. ۱) بوخت، لګيا، مشغول؛ ۲) خصيّ؛ ۳) په خامه غوښه باندې مالګه، مرچ او اوړه اچول او د څه وخت لپاره پرېښوول.

**اخته کول** (axtákawál) مص. مت. ۱) بوختول، مصروفول؛ ۲) خصي کول؛ ۳) په خامه غوښه مساله اچول او د هغې پستول.

**اخته کېدل** (axtakedā́l) مص. ل. ۱) بوختېدل، مصروفېدل؛ ۲) خصي کېدل؛ ۳) د مسالې په اچولو سره د غوښې پستېدل.

**اخته والی** (axtawā́lāy) نر. م. و گ. اخته.

**اختيار** (ıxtiyar) نر. م. ۱) واک، قدرت، ورل، طاقت؛ ۲) خوښه، رضا، په خپل زړه.

**اختيارول** (ıxtiyārawál) مص. مت. ۱) انتخابول، ټاکل، غوره کول؛ ۲) بڼه نيول، د کوم شي په رنګ کېدل.

**اخ ټوخ** (axṭū́x) نر. م. ۱) ټوخل، غاړه تازه کول، ۲) توان، وس؛ ۳) مجازاً خبر ورکول.

**اخدای** (axdā́y) نر. م. ماڼو، کشتيوان، ملاح.

**اخراج** (ıxrā́j) نر. م. ايستل، شړل، لېرې کول.

**اخځ** (áxaj) نر. م. مأخذ، منبع، ريفرنس.

**اخځليک** (áxjlík) نر. م. د مأخذونو لړ، د مأخذونو فهرست، ببليوګرافي.

**اخښت** (axáṣt) نر. م. اخېړ، لېو، اوخښتنه، سيم ګل، کاګل.

**اخښل** (axṣál) مص. مت. ۱) اوړه کارول، اوړه لندول، اوړه اغږل، يا غوړل؛ ۲) ختې پخول.

**اخښنه** (axṣána) ښځ. م. ۱) اغږنه، اوړه لمدونه؛ ۲) ختې پخونه.

**اخښی** (axṣáy) نر. م. د ماينې ورور، د خور مېړه، اوښی، د ښځې ورور او د خور مېړه دواړو ته راځي.

**اخطار** (axṭā́r) نر. م. ۱) ډارول، بېرول، وريادول؛ ۲) ګواښ، خبر، تهديدي خبرتيا.

اخلاص (ıxlā́s) نـر. م. ۱) د زړه له کومې، له زړه نه، ښه نیت، صداقت؛ ۲) مینه، محبت.
اخلاصمن (ıxlāsmán) فـا. نـر. م. صادق، پاک زړی، د پاک زړه خاوند، مخلص.
اخلاق (axlā́q) نر. ج. خوی، عادت، مثبت سلوک، ښه کردار، کړه وړه، چلند، گوزاره رو.
اخلاقي (axlā́qi) ص. نب. د ښه خوی او عادت خاوند، د ښو کړو وړو لرونکی.
اخلال (ıxlā́l) نر. م ۱) خرنج اچول، بندبنت راوړل، ټکه اچول؛ ۲) گډوډي، بې نظمي؛ ۳) تېرى.
اخ وډب (áxadáb) نر. م. جنگ جگړه، وهل ټکول.
اخه (axá) ښځ. م. تاخچه، وړوکی تاق، په دېوال کې تاخچه چې ډیوه، شمه، په کې ایښودل کېږي.
اخېړ (āxéṛ) نـر. م. ۱) اخاړه، لېو، کاگل، سیم گل، پلاستر؛ ۲) شپیتول، خړول.
اخېړ گر (āxeṛgár) فا. نر. م. لېوونکی، ختگر، اخېړونکی، گلکار.
اخېړل (axeṛál) مص. مت. لـېول، خـړول، پلاسترول، سیمگلول، کاگلول.
اخیستل (axistál) مـص. مـت. ۱) پورته کول، رانیول، حاصلول؛ ۲) لرې کول، څغلول.
اخیستونځی (axistūnǰáy) وگ. اخغ.
اخیسته (axistá) ۱) اخیستنه، اقتباس، تعقیب؛ ۲) له لوڅخه وروسته د شولو او غنمو د فصل راټولول.
ادا (adā́) ښځ. م. ۱) پرځای کونه، ورکړه، خلاصونه، رسونه، پرېکونه– پور ادا کول.
اداره (ıdārá) ښځ. م. ۱) ځانگه، دفتر، چلونځی؛ ۲) چلونه، سمبالونه، کنټرولونه، لارښوونه.
اداره چي (ıdārači) نر. م. چلوونکی، لارښوونکی، سمبالوونکی، کنټرولوونکی.
اداره کول (ıdārakawā́l) مص. مت. چلـول، سمبالول، لارښوول، کنټرولول، څارل.
اداري (ıdā́ri) ص. نب. د اداره، دچلونې، د څارنې، د لارښوونې، اداري هیئت.
اداړه (adārá) ښځ. م. (ج. اداړې) ۱) د کارېـز د کويي ارتوالی؛ ۲) داړه.
ادب (ādáb) نـر. م. ۱) عـزت، خـاطر؛ ۲) تمیز، تهذیب؛ ۳) علم، پوهه، زده کړه؛ ٤) حیا، پرده؛ ٥) تربیت، پالنه.
ادبپوه (ādabpóh) نر. م. د ادبپوهنې عالم.
ادبپوهنه (ādabpohána) ښځ. م. د ادب علم، د ادبیاتو پوهنه، علم الادب.
ادبي (ādabí) ص. نب. د ادب، د ادب په تول پوره، په ادب پورې مربوط، ادبي انجمن.
ادبیات (ādabyā́t) نر. ج. ۱) لیکلي آثار، لیکنی، آثار، د لیکل شوو او چاپ شوو آثارو مجموعه؛ ۲) د بشر فکري او هنري خلاقیت.
ادبي بهیر (ādabibáhír) ص. نب. ادبي جریان، ادبي چپه.
ادبي پېر (ādabipér) ادبي دوره.
ادبي ژبه (ādabiẑabá) ادبژبه، لیکـژبه، معیاري ژبه، چلندژبه.
ادبي ښوونځی (ādabiṣowánǰay) ادبي مکتب، مېتود، مکتب ادبي.
ادبي لېله (ādabílelá) ادبي لیار، ادبي سبک،
ادخال (ıdxā́l) نـر. م. ۱) ننه ایستنه، ننه ایستل، داخلول؛ ۲) شاملونه، نیونه، ثبتونه.
ادر (hadár, ádar) نر. م. ۱) له یو شي څخه پرهېز کول، له یو شي نه ځان ساتنه؛ ۲) کرکه، نفرت.
ادرکول (ádarkawā́l) مص. مت. ۱) لـه یوه شي پرهېز کول؛ ۲) کرکه کول.

**ادرار** (idrā́r) نر. ج. میتیازې، بولې، میچیازې.

**ادراک** (idrā́k) نـر. م. فهم، پوهه، درک کـول، پوهېدنه، حسونه.

**ادرم** (adrā́m) نر. م. ۱) اغېـز، اثر، تأثیر؛ ۲) څل، کته، پالانه، د آس د زین لمڅی، توغل، توغم؛ ۳) مست آس، اړې مار آس، کج آس.

**ادعا** (idʕā́) ښځ. م. ۱) غوښتنه؛ ۲) شکایت.

**ادغام** (idɣā́m) نـر. م. ج. ۱) یـو څـه په بل کې ننه ایستل، یو کېدل؛ ۲) ژب. د تورو یو ځای کېدنه.

**ادک** (adák) نـر. م. لپانکی، لشپاکی، کـودی، شاګردی، موخی، د کوچنیانو د لوبې شی.

**ادکو** (adakó) ښځ. م. و ګ. ادکه.

**ادکه** (adáka) ښځ. م. ادکو، ادکی، اتکره، ادکره، مور او یا مشرې ښځې ته د مینې خطاب.

**ادل بدل** (adálbadál) ص. نـر. م. ۱) ګـډوډ، بې ترتیبه، بې نظمه؛ ۲) نر. م. بدلونه، الیشونه، ورکړه راکړه.

**ادمېرال** (admerā́l) نر. م. د بحري قواوو قوماندان، سیند مشر، لوی بحري منصبوال.

**ادنا** (adnā́) ص. نب. ۱) پایه، ټیټ، سپک؛ ۲) لږ، جزیي، کم، بې ارزښته.

**ادوبدو** (adūbadū́) ص. نب. ټنډ، پرسېدلی، ډډ، بوګه، د وهلـو او یا زهـرجنو ژویـو د چیچلو له امله پاړسوب.

**ادوړی** (adūṛáy) نـر. م. پخـه خـرمن، غـواینه او مېښینه پخه خرمن.

**ادوزي** (adozī́) نر. ج. د پښتنو یو خېل دی.

**ادوم** (adū́m) نر. م. ورون، پتون، د پښې هغه برخه چې د زنګون او کوناټې تر منځ پرته ده.

**ادوی** (adwáy) ص. نـر. م. ښېل، ګـوښی، جـلا، یوستوی، ځان ته.

**ادې** (adé) ښځ. م. مور، ادکه، اتکره، ادکره، مور او مشرې ښځې ته د خطاب کلیمه.

**ادیب** (adī́b) نر. م. د ادبیاتو عالم، ښه لیکوونکی، له ادبي علومو سره بلد لیکوال، ادبپوه.

**اډیتوریم** (adītoryám) نر. م. تیاتر، د کنفرانس خونه، د ننداره کوونکو ناستخونه.

**ادیره** (adirá) ښځ. م. د مړو د ښخولو ځای، هدیره، مړیستون.

**اډېله** (adelá) ښځ. م. نیمه پیسه.

**اډ** (aḍ) نر. م. ۱) هډ، هډوکی، غټ اډوکی، غټ هډ، ۲) ذات، خټه، نسب، اصل، نسل، پښه.

**اډاله** (aḍālá) ښځ. م. د کاریز هغه کـوهي چې خوله یې ارته او ویجاړه شوې وي.

**اډانه** (aḍāná) ښځ. م. ۱) د کتاب پـوښ یا وقـایه، چوکاټ؛ ۲) اندام، قواره، د انسان باډي.

**اډاڼه** (aḍāṇá) ښځ. م. ګـودرې، وسـې، اړکـې، برږونه، وېښې، متې چې کوټه پرې ټینګېږي.

**اډانیز** (aḍāníz) نر. م. جوړښتي، چوکاټي، طرحې، تشکیلاتي.

**اډاونه** (aḍāwā́na) ښځ. م. د ودانۍ رغاونه، چوکاټ، قالب.

**اډر** (aḍár) نـر. م. فرمایش، غوښتنه، سپارښتنه، آرډر، منښه (پرې)، قبلونه (پرې)، حکم.

**اډک** (aḍák) نر. م. ۱) چیترو، تیندی، کـونډی، چیندری، لپانکه؛ ۲) تیندی تیندی، لپانکی، کونډی کونډی (لوبه).

**اډل** (aḍál) نـر. م. په غویو د ختو پخـول، په غـویو ختې اخښل.

**اډمار** (aḍmā́r) ص. نـر. م. کبرجـن، مغرور، ځـان خوښوونکی، په غوره کې.

**اډنی** (aḍanáy) نر. م. و ګ. اوډنی.

**اډو** (aḍó) ق. وګ : هډو.

**اډوری** (aḍoráy) ص. نر. م. مندری، په ونه ټیټ، ټیټکی، لوېشتنک، لوېشتکی، غوندری.

**اډوړی** (aḍoṛáy) نر. م. وګ. اډوړی.

**اډه** (aḍá) ښځ. م. ۱) د موټرو، اورګاډو او... تمځای؛ ۲) نظامي او هوايي مرکزونه او ځایونه.

**اډی** (aḍáy) نر. م. ۱) د میچنې او ژرندې تیرک؛ ۲) کلا، کوټ چې د ښار د ساتنې لپاره جوړېږي.

**اډي** (aḍí) نر. ج. بغوټې، هغه مرغېږي چې د ننه په ستونې کې را پیدا کېږي.

**اډۍ** (aḍə́y) ښځ. م. ۱) یوه غرنۍ ونه چې پشه خانې ته ورته شکل لري؛ ۲) د باغچې د ګلانو وړې کیارۍ، نرۍ پولې؛ ۳) جوس، د کلي په خوا کې څه آباده جریب هومره بې پولو هواره ځمکه.

**اډېرلي** (aḍérle) ښځ. م. هغه امیدواره ښځه، چې اولاد یې په نس کې تر ټاکلې مودې زیات پاتې شي.

**اډیکی** (aḍikáy) نر. م. یو ډول ونه ده چې سپین خوږبویه ګل لري.

**اډیګر** (aḍigár) نر. م. د دوو مخالفو او یا زوروړو کسانو ترمنځ دروغي لپاره ناست منځګړی چې یوې خواته هم سپینه خبره نه شي کولای او دواړو ته «ته ښه وایې او ته هم ښه وایې» وایي.

**اډېل** (aḍél) نر. م. ۱) بت، د کارېز یا ډنډ په دېوال کې لګېدلي کاڼي؛ ۲) د نېږدو له امله د ځا ارته خوله.

**اذان** (azā́n) نر. م. ۱) خبرونه، د لمونځ کوونکو د رابللو لپاره بانګ؛ ۲) د چرګ ږغ.

**اذن** (ízn) نر. م. اجازه، خوښه، رضا.

**اذوقه** (āzūqá) ښځ. م. توښه، خواړه.

**اذیت** (azyát) نر. م. ځور، کړاو، ربړ، تکلیف.

**اذیتول** (azyatawə́l) مص. مت. ربړول، ځورول، کړول، تکلیفول.

**ار** (ár) اد. ۱) د تعجب ږغ؛ ۲) د خره د جنګولو لپاره د تحریض کلیمه.

**ارابه** (arābá) ښځ. م. ۱) د توپکو یو ځایي باړ، ډډه، ډیډې؛ ۲) درکړ، پایه، موخی، تیر.

**اراخ** (arā́x) نر. م. ۱) واله، د اوبو لښتی، نهر؛ ۲) لګېډه، ندي، شېله.

**اراده** (irādá) ښځ. م. ۱) تکل، نیت، ویلاړ، عزم؛ ۲) نیت، مرضي؛ ۳) لوړه، هنډه، تصمیم.

**ارادي** (irādí) ص. نب. په کسته، شعوري، په کستمنه توګه، قصدي.

**اراک** (arā́k) ص. نر. م. ۱) پوه، هوښیار، ځیرک؛ ۲) سیانه، چالاک؛ ۳) نر. م. پېلونه، بایکړ، د مسواک ونه.

**ارامي** (arāmí) ص. نر. م. او وګ. ارموني، ګراري.

**ارباب** (arbā́b) نر. ج. ۱) وګ. رب؛ ۲) نر. م. خان، نواب؛ ۳) د پښتنو په ځینو سیمو کې خان او سردار ته ارباب وایي، د لمانځنې، درنښت او معتبرۍ خطاب دی.

**اربکی** (arbakáy) نر. م. قومي پولیس، ولسي عسکر، هغه ولسي وسله وال کسان چې د قومي غونډو د تنظیم او سمون لپاره د قومونو د نفوسو له مخې ټاکل کېږي.

**اربوده** (arbóda) ص. نب. موړ، د وږي ضد.

**اُربه** (urbá) ښځ. م. پله (pla).

**اربه** (arabá) ښځ. م. وګ : ارابه.

**اربېګ** (arbég) ق. نیږدې، خواته، ترڅنګه، اړخ ته، جوخت ته. څنګ ته.

**ارپکی** (arpakáy) نر. م. بام، د کوټې سر، د چت پاسنی برخه.

**ارپگی** ( arpagúy ) ښـځ. م. د پـړونـي ، ټيکـري او ټغر پر څنډو کېږې وږي، انځور شوې ګنډنې.

**ارت** ( árt ) ص. نر. م. ج. پراخ، لوی.

**ارتاو** ( artā́w ) نر. م. اړتاو ،گوزار ،غوزځونه، ترينه.

**ارتاوول** ( artāwawə́l ) مص. مت. تريل ، غورځول ، اړتاوول، گوزارول، ويشتل.

**ارتاوی** ( artāwáy ) ښځ. م. سره مميز ( کشمش ) .

**ارتاوېدل** ( artāwedə́l ) مـص. ل. غـورځېدل، لوېدل، اړتاوول.

**ارتاويز** ( artāwíz ) ص. نر. م. ج. اپلتي ، پرتي.

**ارتاويزه** ( artāwíza ) ښـځ. م. بې هـدفـه، چټي، پرتي ، اپلتې ګډې وډې خبرې .

**ارتباط** ( ırtibā́t ) نر. م. اړيکه، تړاو ، رابطه.

**ارتجاع** ( ırtijā́ʔ ) ښځ. م ۱ ) راګرځېدل ، راستنېدل رجعت؛ ۲ ) هغه سياست چې د استثمارونکې طبقې په گټه د ټولنې له پرمختگ سره مخالفت کوي او د مترقي نهضتونو شنډول غواړي.

**ارتجاعي** ( ırtijāʔí ) ص. نب. وگ. : ارتجـاع، دوه مخی ، ښوی ، منافق ، ښويکی.

**ارتزاقي** ( ırtizāqí ) ص. نب. خوراکتوکي ، خوراکي (مواد ) ، خوراکي شيان.

**ارتفاع** ( ırtifā́ʔ ) ښځ. م. لـوړوالی ، هسک والی ، جګوالی.

**ارتقا** ( ırtiqā́ ) ښځ. م. ۱ ) وده، لـوړتـيا ، تکامل، ترقي؛ ۲ ) لوړوالی، جګوالی.

**ارتل** ( artə́l ) مص. مت. ارتول ، غورځول.

**ارتوالی** ( aratwā́lay ) نر. م. پراخوالی ، لويوالی.

**ارتول**(۱) ( aratawə́l ) مص. مت. پـراخول ، لـويول ، سترول.

**ارتول**(۲) ( artawə́l ) مص. مـت. غورځول ، گوزارول ، تربـل ، خطا کول ، الغڅول.

**ارتون** ( artū́n ) نر. م. ارتوالی ، پراخي ، لويوالی.

**ارتېدل** ( aratedə́l ) ښځ. م. پراخېدل ، لويېدل.

**ارتياکه** ( artyā́ka ) ص. ښځ. م. کاواکه ، ناشولته ، ناغړنده ، ښځايه خبره.

**ارتېيل** ( arteyə́l ) مص. مت. ارتول ، غورځول.

**ارتېيلځی** ( arteyəlʒáy ) خځلځی ، ډېران ، کوړا.

**ارتي** ( ártí ) ص. نر. م. ۱ ) په يوه خبر ولاړ ، سرتمبه ، سرزوری ؛ ۲ ) مفعول ، بگی.

**ارتيسټ** ( artíst ) ص. نـر. م. هنرمند ، لـوبغاړی ، تمثيل کوونکی.

**ارث** ( ırs ) نر. م. ورېښون ، پاته مړی ، ميـراث ، هغه شتمني چې له مړي پاتې کېږي.

**ارثي** ( ırsí ) ص. نب. نسبي ، نسـلي ، جنيتيکي - ارثي خواص ، ارثي علايم.

**ارجاع** ( ırjā́ʔ ) ښـځ. م. ۱ ) راالړونـه ، راگـرځونـه ، راگرځېدنه؛ ۲ ) رجوع ، ورتلنه.

**ارجل** ( arjə́l ) ص. نر. م. ۱ ) اروړه ، ارگجه ، مخلوط ، گډ (نسب ) ؛ ۲ ) بې نسبه ، بې قومه.

**ارجلی** ( arjaláy ) ښځ. م. يو ډول سپين بخنه څېړی ده.

**ارچه** ( árča ) ښځ. م. د لمنځې ونه.

**ارخالک** ( arxālák ) نر. م. ۱ ) مـالوچ لرونکی يا بې مـالـوچو يـو ډول پنډ کميس؛ ۲ ) اندرکه ، سدری ، واسکټ.

**ارخشی** ( arxašáy ) نـر. م. خراشکی ، خروشکی ، گروړبی ، اخرشی ، د سينې يا د خولې بلغم.

**ارخنبی** ( arxáṣ ) نر. م. په ژړا کې غربو نيول؛ ۱ ) هغه آواز چې د ژړا پر وخت په مـری کې بند شي؛ ۲ ) سالنډی ، سابندی ، نښتی او نيولی آواز.

**ارداوه** ( ardāwá ) ښځ. م. اړداوه ، دل شوې غله چې له اوبو سره گډه شي ، د څارويو خوراک.

**اردلی** (ardálay) نر. م. نفرخدمت، د شتمن سړي تمخې ته ولاړهغه سپايي يا ملازم چې د تګ په وخت کې ترې مخکې مخکې يا څنګ ته ځي.

**اُردو** (urdū́) نر. م. ۱) لښکر، پوځ، پلټن، د څو قول اردو مجموعه؛ ۲) ښځ. م. د پاکستان رسمي ژبه ده، چې په هند کې هم ډېر ويونکي لري.

**اُردو بازار** (urdūbāzā́r) نر. م. هغه بازار، چې د عسکرو د اړتياوو دلرې کولو لپاره د چونيو په شا وخواوو کې جوړېږي. په لاهور کې يو مشهور بازار دی.

**اړراو** (arṛā́w) نر. م. للو کېدل، د کوچنيانو په ژبه خوب ته وايي.

**اړره** (ɪrṛá) ق. په ډله، په ګډه، غونډ، ټول، په اېړ، په جمع، ويره- موږ ورپسې په اړره ولاړو.

**اړری** (arṛáy) نر. م. ۱) الکيور مېږ، اريي، ابړی؛ ۲) جنګي ګډ يا ګډی؛ ۲) و ګ. اړراو.

**ارز** (arz) نر. م. ۱) درناوی، احترام، دروندوالی، درنښت؛ ۲) ارزښت، بها، ارزه، قيمت.

**ارزاق** (arzā́q) نر. ج. غذايي مواد، زري.

**ارزان** (arzā́n) ص. نر. م. ۱) کم قيمته، لږ بيه؛ ۲) په اسانه لاس ته راتلونکی شی.

**ارزانبيه** (arzā́nbayá) ارزان قيمته، کم بيه.

**ارزښت** (arzáṣt) نر. م. ۱) بيه، قيمت، ارزش، بها؛ ۲) قدر، عزت، اهميت.

**ارزښتمن** (arzaṣtmán) نر. م. ارزښتناک، غوره.

**ارزول** (arzawál) نر. م. ارز موندل، ځيرل، کړکول.

**ارزېدل** (arzedál) مص. ل. برابرېدل، د څه جوګه کېدل، وړ کېدل، د يو شي مستحق ګڼل کېدل.

**اړزل** (arẓál) مص. ل. تېغونه ايستل، د بدهضمی له امله خوسا تېغونه ايستل.

**ارستوکرات** (arastokrā́t) ص. نر. م. ساوو، نجيب، اشرافي کورنی، په يوه طبقاتي ټولنه کې لوړه او حاکمه طبقه.

**ارسی** (arsə́y) ښځ. م. ۱) هغه غمي لرونکې ګوته چې د ابهام په ګوته کې وي؛ ۲) هنداره، اينه.

**ارسين** (arsín) نر. م. يو ډول ژېړ ګلی پسرلنی بوټی.

**ارسينيک** (arsénik) نر. ج. ارتال، زرنيخ.

**ارشاد** (ɪršā́d) نر. م. لارښوونه، نغوته، هدايت.

**ارشيف** (aršíf) نر. م. پانوځی (د دفتر په مانا)، اوراق، و ګ. اوراق.

**ارغاړی** (arğā́ṛay) نر. م. څوړ، څوړی، مخ په کښته.

**ارغاړيز** (arğā́ṛiz) ص. نر. م. ۱) تېګ، درغل، دروهونکی؛ ۲) دوه مخی، دوه ژبی.

**ارغجه** (arğája) ص. نب. و ګ. ارګجه.

**ارغچله** (arğačə́la) ښځ. م. ډېر تاو کړی شوی پړی، پر غړلی پړی، کليچ پړی، پرغبړلی پړی.

**ارغځنی** (arğacanáy) نر. م. د غرڅه د پښې سپښته.

**ارغڅه** (arğáca) ښځ. م. ارغشه، توره وزه.

**ارغستلې** (arğastə́le) ص. ښځ. ج. بې ډبه، چټي، اپلتې، نامناسبې خبرې.

**ارغواني** (arğawā́ní) ص. نب. دارغوان، د کچلين په څېر سور رنګ، دارغوان ګل په څېر رنګ.

**ارغوچکه** (arğūčáka) ښځ. م. ټوپ وهنه، ټوپ، دانګل.

**ارغوچېدل** (arğūčedə́l) مص. ل. له ويالې نه دانګل يا په ټوپ باندې پورې وتل.

**ارغوش** (arğóš) ص. نر. م. غنم رنګی، الغوش.

**ارغوشتکه** (arğoštáka) ښځ. م. و ګ. ارغوچکه.

**ارغولي** (arğolí) ښځ. ج. ارکوړي، امينکو، هلکان راغونډېږي دباران دورېدو لپاره په کلي، کور په کور ګرځي او خيرات ټولوي.

**ارغونچکي** (arğōnčákí) نر. ج. يوه مشهوره لوبه ده، چلم چټړی هم ورته وايي.

**ارغونچی** (arǧónčay) ص. نر. م. درې لړیز پړی، درې تاریز تار، درې خواوې کندی.

**ارغوند** (arǧwánd) نر. م. د ښیېو په لوبه کې هغې غټې سپینتې چې تورې پرې ویشتل کېږي.

**ارغونکی** (arǧūnakáy) نر. م. غریبیز پیاز، پیازکی

**ارغه** (arǧá) ښځ. م. ۱) د کورنیو کوترو یو ډول؛ ۲) مردکه، مردکی؛ ۳) سپینتنه.

**ارقام** (arqā́m) نر. ج. و. گ. رقم.

**ارکاره** (arkā́rá) ښځ. م. ۱) د هلکانو یوه لوبه ده؛ ۲) کرېځی، کړسو، کتېړی، یو ډول د اوسپنې څوکه ور او اوږد لاستی لوښی، چې هگی او ځینې نور شیان په کې پخوي.

**ارکان** (arkā́n) نر. ج. و. گ. رکن.

**ارکان حرب** (arkānîhárb) نر. م. هغه عسکري منصبدار، چې په حربي اداره او تشکیلاتو کې یې تخصص اخیستی وي.

**ارکانی** (arkānáy) نر. م. یو ډول ختکی دی چې پنډ [illegible]ی لري.

**ارکتیک** (arktík) نر. م. د ځمکې د شمالي قطب شا وخوا وچه برخه.

**ارکسترا** (arkestrā́) ښځ. م. ډله ییزه موسیقي، یوه ډله سازنده گان چې په گډه یو هنري اثر د موسیقۍ په څېر کې تشیلوي.

**ارگ** (arg) نر. م. ۱) کوټ، کلا، هغه وړوکې ماڼۍ چې د لویې کلا په منځ کې جوړه شوې وي او پاچا په کې اوسېږي؛ ۲) پاچاهي استوگنځی.

**ارگان** (orgā́n) نر. م. د موسیقۍ یوه آله ده.

**ارگانه** (argāná) ښځ. م. شومه، خوراک، نفقه.

**ارگجه** (argajá) ص. نب. ۱) گډ، مخلوط، ارغجه، گډوله؛ ۲) خوږند؛ ۳) یو ډول عطر دی چې له چندنو، گلابو، کافورو او... څخه جوړېږي.

**ارگجی** (argajáy) ص. نر. م. ارجل، اروړه، بې شجرې سړی.

**ارگوډی** (argoḍáy) نر. م. د خوسي لوبه.

**ارگوړي** (argoṛí) ښځ. م. و. گ. ارغولی.

**ارگړه** (argaṛá) ښځ. م. د آس ځغلولو میدان.

**ارگنه** (argána) ښځ. م. پنجره یي ور.

**ارلجه** (arlajá) ص. ښځ. م. ناشولته خبره، اپلتې، بې فایدې او نامعقوله خبره، اوتې بوتې.

**ارلی** (arláy) ښځ. م. لاربندی، خربندی، د لارې د بندولو اوږد لرگی، اړبکی.

**ارم** (arám) نر. م. ۱) دیوه ښکلي افسانوي باغ نوم چې وايي شداد جوړ کړی و؛ ۲) مجازاً جنت.

**ارمان** (armā́n) نر. م. ۱) هیله، غوښتنه، تلوسه؛ ۲) پښېماني، افسوس.

**ارمانجن** (armānjén) ص. نر. م. ۱) ارماني، هیله من، غوښتونکی؛ ۲) پښېمانېدونکی، افسوس کوونکی.

**ارمانژلی** (armānzaláy) و. گ. ارمانجن.

**ارماني** (armā́ni) تمنايي، هیله من، آرزومند.

**ارمتی** (armatáy) ص. نر. م. چابک، چټک، متی.

**ارمټه** (armaṭá) ښځ. م. کونډه، غریبه کونډه.

**ارمچک** (aramčák) ص. نر. م. ۱) ارمونی، حرامزاده؛ ۲) مج. شوخ، شیطان، بدسترگی.

**ارمغان** (armaǧā́n) نر. م. سوغات، ډالۍ، خونی.

**ارمگی** (aramgáy) نر. م. لوړ، تنډی، کونتی، ډانگ، د شپانه کوتک.

**ارمن** (armán) نر. م. امبور.

**ارموسته** (armósta) ښځ. م. کنداتی، ورړه، کنډ، د تندی لنگې لومړنی شیدې. و. گ. اورره.

**ارمونی** (aramū́nay) ص. نر. م. ۱) ارامي، حرام زاده، متینگی؛ ۲) نر. م. ډبلی، هغه هگی ډوله

لرګی چې د ژرندې د پله د ښویولو او اړولو لپاره پکاریږي.

**ارمونیه** (armūnyá) ښځ. م ۱) باجه، د موسیقي یوه پرده لرونکې آله ده؛ ۲) دیوه سپک فلز نوم، المونیم.

**ارن** (arán) نر.م. ارڼ، د موټر هغه آله چې د خلکو د خبرولو لپاره وهل کېږي.

**ارڼۍ** (araṇáy) ښځ. م. ګېڼۍ، هرڼۍ، لېوالتوب، لولپه توب، یو شي ته لېواله کېدل.

**اروا** (arwā́) ښځ. م. روح، سا، سایه، سېلوې.

**اروا پوهنه** (arwāpōhána) ښځ. م. ساپوهنه، علم الروح، سایکالوجي.

**ارواڅک** (arwāčák) ص. نر.م. و ګ. اروا وږی.

**ارواح** (arwā́h) نر.ج. و ګ. روح.

**ارواړی** (arwāṛáy) نر.م. یو ډول بوټی دی چې په غنمو کې کېږي او توري توري دانې نیسي.

**اروا ښاد** (arwaṣā́d) نر. م. مړ، مرحوم.

**اروالېږد** (arwā́lezd) ص. نر.م. د روح انتقال، فقید، د روح حلول.

**اروا وږی** (arwāwəẓáy) ص. نر.م. حریص، وږسترګی، ستروږی، ارواڅک، سپی خو یه.

**اروړ** (arṓṛ) نر.م. ۱) رخه، کینه، بغض، دښمني؛ ۲) ص. نر. م. ترتری، نیم ژبی؛ ۳) زیان.

**اروړه** (aroṛá) ص. نب. ګډوله، ارګجه، ګډ، ګډلی، ګډوډ، په یو بل کې ګډ.

**اروسي** (arōsí) ښځ. م. وراسي، هغه ډوډۍ چې د مړي کور والو ته د خپلوانو له خوا تر دریمې شپې پورې وړل کېږي؛ ترخه یا د غم ډوډۍ.

**ارول** (arawə́l) مص. مت. بایلل، بای کول، هرل.

**اروه** (arwá) ښځ.م. وینا، خطاب، بیانیه.

**اره** (ará) ښځ. م. ښېرۍ، څره، د ترکانۍ یوه آله ده.

**ارهډ** (arhā́ḍ) ارهټ، ارټ، راټ.

**ارهر** (arhár) نر.م. عرعر، هرهر، یو ډول بوټی دی.

**اره کښ** (arakáṣ) نر. م. څیرندوی، څیرندګر، اره کوونکی، اره ګر، اره کش.

**اره ګولی** (aragwəláy) نر.م. یو راز قره قلي پوستکی دی.

**اري** (arí) نر.م. ج. هغه اوښ چې دوه بوکان لري.

**اری** (aráy) نر.م. لکېور پسه.

**ارۍ** (aráy) ښځ. م. غاښور لور، اره لور.

**ارياش** (aryā́š) نر.م. پېړوی، راش.

**اريان** (aryā́n) ص. نر.م. ج. ۱) بې وسه، بېوزله، خوار، محتاج؛ ۲) حیران، هک پک.

**اريان دريان** (aryāndaryā́n) نر.م. اريان.

**اريانتيا** (aryāntyā́) ښځ. م. اریاني، اریانتوب، خواري، غریبي، حیراني، تعجب.

**اريانوونکی** (aryānawū́nkay) فا. نر.م. ۱) هک پک کوونکی، حیرانوونکی، ۲) خواروونکی.

**ارېړ** (aríṛ) نر.م. ۱) یو ډول خواړه خواږه، چې له نشایستې څخه جوړېږي؛ ۲) هغه لرګی، چې د ارهټ د کوېي د دوو پړو په منځ کې وړکول کېږي.

**اړ** (aṛ) ص. نر.م. ج. ۱) کریاب، محتاج؛ ۲) څنډ، ایسار، ټال؛ ۳) بند، پرواګیر؛ ٤) بوخت، اخته ٥) اغېړ، بند؛ ٦) نر. م. د اهاړ میاشت.

**اړا** (aṛā́) ص. نر.م. ۱) لیاړجن، لیاړن؛ ۲) سپین سترګی، بې حیا، بې شرمه، بې ادبه.

**اړام** (aṛā́m) ص. نر.م. ۱) شوخ سترګی، بې باکه، سپین سترګی؛ ۲) مجازاً شیطان.

**اړامنه** (aṛāmná) ښځ. م. بې شرمي، بې حیایي، سپین سترګتوب، بې ادبي، سپین سترګي.

**اړاند** (aṛā́nd) ص. نر.م. اخته، بوخت، لګیا.

**اړاو** (aṛā́w) نر.م. وگ. اړاب.

**اړايي** (aṛā́yi) ښځ. م. وگ. اړه.

**اړ ايستل** (aṛistə́l) مص. مت. ۱) مجبورول، اړ کول؛ ۲) بندول، راگېرول، ايسارول.

**اړپېچ** (aṛpeč́) نر.م. اړوپېچ، لانجه، شخړه.

**اړپېچن** (aṛpečán) نر.م. لانجمن، مخالفت.

**اړت** (aṛát) نر.م. خنډ، اخلال، ټکه، خړنجه.

**اړت** (aṛát) نر.م. ډله ييز تجارت، گډ تجارت.

**اړتوب** (aṛtób) نر.م. وگ. اړتيا.

**اړتوگی** (aṛtogáy) ص. نرم. وگ. اړام.

**اړتون** (aṛtū́n) نر.م. محبس، بنديخانه، زندان.

**اړتيا** (aṛtyā́) ښځ. م. کريابي، محتاجي، احتياج.

**اړتياوړ** (aṛtyāwə́ṛ) د ضرورت وړ، مايحتاج.

**اړخ** (aṛx) نر.م. ۱) لوری، خوا، پلو، څنگ، ډډه؛ ۲) څنډه، غاړه.

**اړخن** (aṛxán) ص. نر.م. وگ. اړخيز.

**اړخی** (aṛxáy) نر.م. ۱) د غره لمن، څوړی، آريزه، څوړه څمکه، لولانه؛ ۲) پورتنی پوښتی.

**اړخيز** (aṛxíz) ص. نر.م. ۱) اړخ لرونکی، اړخن؛ ۲) له يوې خوا - اړخيزه حمله.

**اړخيزاواز** (aṛxizawā́z) ص. نر.م. د ژبې په اړخ ادا کېدونکی اواز لکه «ل».

**اړخيزه** (aṛxizá) ص. ښځ. م. ۱) اړخ لرونکې، اړخنه؛ ۲) له يوې خوا؛ ۳) طرفجنه خبره.

**اړداوه** (aṛdā́wa) ښځ. م. وگ. ارداوه.

**اړکی** (aṛakáy) ښځ.م. ۱) لتو، هغه تلک چې له ښکر څخه جوړېږي؛ ۲) لينگته اچول، بندش اچول.

**اړ کول** (aṛkawə́l) مص. مت ۱) کريابول، محتاجول؛ ۲) څنډول، ايسارول؛ ۳) بندول، اړ ايستل؛ ٤) لگيا کول؛ ٥) قبضول، اغېزول.

**اړکی**[۱] (aṛkáy) نر.م. اړيکی، پاټکی، پټه، د زينې د پټيو لرگی يا لته.

**اړکی**[۲] (aṛakáy) نر.م. (ج. اړکي) ۱) د جولاگانو د تانستې هغه لرگی چې د تار د تېرولو په وخت کې کښته پورته کېږي؛ ۲) د ماتو هډوکو د تړلو تخته؛ ۳) کښې، هغه لرگي چې په غبرگه رسی کې د لرگيو د بار د تړلو لپاره اچول کېږي.

**اړکېدل** (aṛkedə́l) مص. ل. وگ. اړول.

**اړليک** (aṛlík) د لاسکښلی نقل، رونويسي.

**اړم** (aṛám) نر.م. ۱) بوخت، لگيا؛ ۲) د دروازې د بندولو لرگي؛ ۳) د يوه درانه شي د پورته کولو يا رغړولو لپاره لرگي؛ ٤) سرزوري، سرکښي؛ ٥) نښتی، انډول؛ ٦) پېچ، درد.

**اړمرستيالکړ** (aṛmrastyālkáṛ) گر. مقيد يا انشاييه کومکي فعل.

**اړمکی**[۱] (aṛamkáy) نر.م. ۱) د لرگي اړم، چې د ژرندې د پاسني پل د پورته کولو لپاره په کارېږي ۲) د شپنو کوتک.

**اړمکی**[۲] (aṛamakáy) نرم. د مستۍ په وخت کې د ينده پسه آواز.

**اړناوی** (aṛnāwáy) نر.م. دولت، شتمني، ثروت.

**اړنگ** (aṛáng) نر.م. وسواس، شک، تردد، گومان.

**اړنگ بړنگ** (aṛangbaṛáng) ص. نر.م. ۱) متردد وسواسي، سودايي؛ ۲) خړ، خينگ؛ ۳) بې وسه

**اړنگمن** (aṛangmán) ص. نر.م. شکمن، شکي.

**اړنگو بړنگو** (aṛangū-baṛangū́) ص. نب. کوږوږ، شالي والي، شاړې واړې.

**اړنگی** (aṛangáy) ښځ. م. لينگته، پښه اچول، لنگتی، د چا د غورځولو لپاره پښه ورته اړمول.

**اړوالی** (aṛwā́lay) نر.م. وگ. اړتيا.

**اړوب** (aṛób) نر. م. ۱) نري شوي اوړه، اتوب؛ ۲) اړداوه، ارداوه؛ ۳) نرۍ ختنه، اخېړ، خروب؛ ٤) بېخونده کتغ، بېخونده خواړه.

**اړوپړ** (aṛupáṛ) ص. نب. ۱) نښتی، يو په بل کې ننوتی، تاوراتاو؛ ۲) پړ مخي، اپوټه.

**اړوت** (aṛūt) ص. نر. م. بدخويه، تريوتندی سړی.

**اړوتړ** (aṛutáṛ) نر. م. تړون، ژمنه، لوز، اوی، عهد.

**اړوت غړوت** (aṛūt-gaṛūt) نر. م. ج. چل، پلمه آنې بانې، درواغ، دروه،، تګي برګي.

**اړوتل** (aṛwatál) مص. ل. ۱) اړکېدل، بې وسه کېدل، بندېدل؛ ۲) مجبورېدل.

**اړوتلی** (aṛwataláy) فا. نر. م. و ګ. اړ.

**اړودوړ** (aṛūdūṛ) نر. م. ج. بلوا، شخړه، اله ګوله، اخ و ډب، ګډوډي، شخه شولانګه.

**اړوښتی** (aṛoştáy) نر. م. زېرمه، پاسره؛ پانګه.

**اړوک** (aṛók) نر. م. هېرځی، اروړ، کسات، کينه، بغض، غچ.

**اړول** (aṛowál) مص. مت. ۱) پړ مخې کول؛ ۲) کرېابول؛ ۳) عقيده وربدلول، منصرفول؛ ٤) د کتاب پاڼې له يوه مخه پر بل مخ کول؛ ٥) پټی اړول، پيوې کول؛ ٦) استوګنه غوره کول؛ ۷) يوه خبره په چا ورتپل؛ ۸) بندول.

**اړونج** (aṛwánj) نر. م ۱) متېه، ډاګه، ستنه، پښې، پايه؛ ۲) بنسټ، اساس.

**اړوند** (aṛwánd) نر. م. مربوط، مرتبط، تړلی، متعلق، تابع، سره تړلی.

**اړوندي پوړ** (aṛwandipóṛ) نر. م. د خپلوۍ پوړ، د خپلوۍ درجه.

**اړوونکی** (aṛawūnkáy) نر. م. ۱) اړووني، د بېډيو يو ډول لوبه ده؛ ۲) ختکی، کتار؛ ۳) ړنده خره، خره بلوله، ړانده خره. باداسکی.

**اړه** (aṛá) ښځ. م. ۱) احتياج؛ ۲) اړيکې، تړاو؛ ۳) بندېز؛ ٤) تنۍ، د غلې د پيمانې کولو لوښی؛ ٥) ماووت، هغه اندازه غله چې د کلي کسبګرو ته د فصل اخيستلو پر وخت د کار په مقابل کې ورکوله کېږي، ٦) اړه، و ګ. آړه.

**اړه تړه** (aṛá-taṛá) ښځ. م. سمبالونه، بندوبست، سمونه، تياری.

**اړه لرل** (aṛalarál) مص. ل. احتياج لرل، ارتباط لرل.

**اړي** (aṛí) ښځ. م. ۱) د هلکانو يو ډول لوبه ده؛ ۲) حاجت، اړتيا؛ ۲) خنډ، بندېز؛ ۳) تعلق؛ ٤) ضد، ډېسه، ړېسه.

**اړی**(۱) (aṛáy) نر. م. ۱) لکيور پسه؛ ۲) جنګي ګډ.

**اړی**(۲) (aṛáy) جنجال، لانجه.

**اړۍ** (aṛáy) ښځ. م. ۱) پچاړی، پياړمه، ډوبک؛ ۲) د پټيو پوله؛ ۳) د سپاري موټی.

**اړېدل** (aṛedál) مص. ل. ۱) کرېابېدل، اړکېدل؛ ۲) مجبورېدل؛ ۳) ځنډېدل، بندېدل.

**اړېړی** (aṛeṛáy) نر. م. و ګ. اړيړی.

**اړيکپېر** (aṛikpér) نر. م. ارتباطي حالت، د ربط حالت.

**اړيکترونونه** (aṛiktaṛūnūná) اړوند ارتباطي تړونونه (ژبپوهنه).

**اړيک خپلواک** (aṛikxpalwāk) ارتباطي واول، دوه ژبني توکه ديوې اړتيا لپاره سره نښلوي.

**اړيکغونډله** (aṛikğwánḍla) اړونده جمله.

**اړيکلار** (aṛiklār) مواصلاتي لاره.

**اړيکن** (aṛikán) اړوند (غږپوهنه) مربوط.

**اړيکنومځری** (aṛiknūmzáry) ارتباطي ضمير.

**اړيکويیکی** (aṛikwayikáy) د ربط ادات، د ربط کليمه، د ربط حرف، صله.

اړیکه (aṛiká) ارتباط، نښتون، پیوستون، پیوند، تعلق، مناسبت.

اړیکی (aṛikáy) نر.م. ۱) رابطه، اړه، تعلق، علاقه ۲) بندېز؛ ۳) اړم، تمبه.

اړین (aṛín) اړتیاوړ، ضروري، حتمي.

اړیه (aṛyá) ښځ. م. اړی، لیکی، د دوو پولو په منځ کې اوږده ځمکه.

ازادندی (azādandáy) آزادخیاله، ازاد فکري.

ازادګړ (azādgáṛ) خپلواکګړ، مستقل مورفیم.

ازادیپال (azādipā́l) ازادي غوښتونکی غورځنګ.

ازادیپالنه (azādipāléna) ازادي غوښتنه.

ازارول (azārawál) مص. مت ۱) ربړول، ځورول، ضرر رسول؛ ۲) ښېرا کول، عاقول، ښهلی.

ازاري (azā́ri) فا. نر.م. ۱) ځوروونکی، زیان رسوونکی؛ ۲) مف. عاق شوی.

ازارېدل (azāredál) مص. ل. ۱) ځورېدل، ربړېدل؛ ۲) عاق کېدل، ښېرا ورته کېدل.

ازانګه (azā́nga) ښځ. م. (ج. ازانګې) انګازه، پژواک، د ږغ انعکاس، انګې.

ازخوړی (azxóṛay) نر.م. ۱) یو ډول اغزی؛ ۲) ص. نر. م. مجازاً از ازګنلی، ازاري.

ازدحام (ızdihā́m) نر.م. اتمبار، ګڼه ګونه، سراوړه د خلکو بېروبار.

ازدواج (ızdiwā́j) نر.م. ښځه کول، واده کول.

ازغکی (azgakáy) نر. م. و ګ. اغزکی.

ازګی (ı́zgi) ښځ. م. ایجګي، په حرکاتو د کلیمو او تورو لوستل.

ازل (azál) نر.م. ۱) ف. بې مبدأ هستي، هغه زمان، چې پیل یې نه دی معلوم؛ ۲) لومړی ورځ.

ازل لیک (azállik) نر. م. برخلیک، سرنوشت، تقدیر، قسمت، نصیب.

ازلي (azalí) ص. نب ۱) بې مبدا هستي ته منسوب ۲) له ازله، له پیله، قدیمي.

ازمار (azmā́r) ص. نر. م. درغل، ټګ، مکار.

ازمارتوب (azmārtób) نر.م. ټګي، درغلتوب.

ازماینښت (azmāyáṣ̌t) نر.م. ۱) ازموینه، امتحان، معلومونه؛ ۲) تجربه.

ازمایل (azmāyál) مص. مت. ۱) ازماینښت کول، معلومول؛ ۲) تجربه کول.

ازمایلی (azmāyálay) مف. نر.م. ۱) ازمېیل شوی، امتحان شوی؛ ۲) مجرب.

ازماینه (azmāyaná) ښځ. م. ۱) ازماینښت کونه، معلومونه؛ ۲) تجربه کونه.

ازموینځی (azmoyánǰay) نر. م. لابراتوار، د ازموینې ځای.

ازمون (azmū́n) نر.م. پوهنتوني کانکور، د پوهنتون د داخلې ازموینه.

ازموینه (azmōyaná) ښځ. م. و ګ. ازماینه.

ازمېښتځی (azmeṣ̌tǰáy) نر. م. د ازمېښت ځای یا خونه، لابراتوار.

ازمېښتکار (azmeṣ̌tkā́r) تجربه کار.

ازمېښتون (azmeṣ̌tū́n) تجربه ګاه، لابراتوار.

ازمېښتي غږ پوهنه (azmeṣ̌tiǧaẓpōhána) لابراتواري غږ پوهنه، غږ پوهنه.

ازېیل (azeyál) مص. مت. و ګ. اړېیل.

ازېیلی (azeyaláy) مف. نر. م. ۱) غول شوی؛ ۲) پارول شوی.

اژدر (aždár) نر. م. ښامار، لوی مار، اژدها.

اژدها (aždahā́) نر.م. ښامار، اژدر، لوی مار.

اږبکه (aẓbaká) ښځ. م. یوه تور وزري مرغۍ ده چې کب خورکه هم ورته وایي.

اږل (aẓál) ص. نر. م. لېوال، هیله من، په تلوسه.

**ازېيل** (azeyál) مص. مت. ۱) پرې تاوول، پرې غبښل؛ ۲) پارول، گومارل، هڅول.

**اسارت** (asā́rat) نر.م. ۱) بند، بندیتوب، حبس؛ ۲) مریبتوب، غلامي، اگروالی.

**اساس** (asā́s) نر.م. بنسټ، آره، سته، رده.

**اساسنامه** (asāsnā́ma) ښځ. م. ۱) کړنلاره، نګلاره؛ ۲) هغه متن دی چې د یوګوند مقررات او موازین تعیینوي.

**اساسي** (asā́si) ص. نسب. ۱) بنیادي، بنسټي، مونډیز؛ ۲) اصلي، اصولي، سم، مقدماتي.

**اساطیر** (asā́tir) نر.ج. کیسې، حکایتونه.

**اسامبله** (asāmblá) ښځ.م ۱) جرگه، ۲) غونډه، ټولنه؛ ۳) شورا.

**اسامي** (asā́mi) نر.م. هغه سړی، چې د مالیې او مال و مواشي له پلوه په کوم ملک او خان پورې تړلی وي.

**اسان** (asán) ص. نر. م. ج. د گران، او سخت ضد.

**اسانتیا** (asāntyā́) ښځ. م. اساني، اسانتوب، اسانوالی، سهولت.

**اسانسور** (asānsór) نر.م. لیفټ، هغه برقي وسیله چې دپورته او ښکته کېدو لپاره کارځنې اخلي.

**اسانول** (asānawə́l) مص. مت. اسانتیا راوستل، ستونزې لیرې کول، اساني راوستل.

**اسانونه** (asānawā́na) ښځ. م. اسانتیا راوستنه، د ستونزو لیرې کونه، اساني راوستنه.

**اسباب** (asbā́b) نر. ج. ۱) علتونه، سببونه؛ ۲) وسیله، چاره؛ ۳) کالي، سامان او لوښي.

**اسبون** (asbū́n) نر.م. د اسانو څروونکی، د اسانو پېوونکی، د اسانو پوونده، اسبه.

**اسپیرانت** (aspirā́nt) نر.م. هغه څوک چې تر ماسټرۍ وروسته د دکتورا د اخیستلو لپاره علمي کار کوي.

**اسپل** (aspə́l) مص. مت. راغونډول، زېرمول، ټولول، جمع کول.

**اسپلاغ** (aspā́lağ) نر.م. پالک، د پالکو سابه، د پالکو ساگ.

**اس پنډوس** (aspanḍós) نر.م. یو ډول لوبه ده، اسډنډه، کړسانگه.

**اسپنډوکی** (aspanḍūkáy) نر.م. د آس کنجوغه.

**اسپوېلی** (aspoeálay) ص. نر. م. درونډ سړی، خوړ سړی، سپین روبی.

**اسپه** (aspá) ښځ. م. (ج. اسپې) ۱) د آس ښځینه شکل؛ ۲) لمبه، یو ډول جلدي ناروغي ده، یو ډل دانه ده؛ ۳) محرقه، وچکې، زوروره.

**اسپېیل** (aspeyál) مص. مت. و گ. اسپل.

**استاد** (ostā́d) نر.م. و گ. استاذ.

**استاذ** (ostā́z) نر. م. ۱) ښوونکی، معلم؛ ۲) هغه څوک، چې نورو ته لارښوونه کولای شي.

**استاذي** (ostā́zi) ښځ. م. مهارت، لاس لرنه.

**استازډله** (astāzḍalá) ښځ. م. پلاوی، جرگه.

**استازگرانه** (astāzgarā́na) رسالتمندانه، متعهدانه

**استازلیک** (astā́zlik) وکالت خط، کفالت خط، کفالتنامه.

**استازی** (astā́zay) نر.م. ربار، څری، بکاری، قاصد، خبروړونکی.

**استازي** (astā́zi) نر.م. نماینده گي.

**استحکام** (istihkā́m) نر.م. ټینگوالی، کلکوالی، پوخوالی، محکموالی.

**استخبارات** (istixbārā́t) نر.ج ۱) پلټنه، لټونه، کشف؛ ۲) جاسوسي، مخبري.

**استخدام** (istixdā́m) نر.م. د کار لپاره منل، کارکوونکي پیدا کول، په کار اچول.

**استخراج** (1stuxráj) نر.م. ایستنه، خارجونه، ښکاره کونه، باسنه.

**استدراک** (1studrák) نر.م. پوهېدنه، درک کونه، میندنه، د پوهېدنې په طلب کې.

**استدعا** (1studsá) ښځ.م. هیله، غوښتنه، تمه، امید، سوال.

**استدلال** (1studlál) نر.م. دلیل راوړل، د یوې موضوع د اثبات لپاره د دلایلو، اسنادو او شواهدو راوړل.

**استر** (astár) نر.م. ۱) هغه ټوکر چې ترجامې لاندې ګنډل شوی وي؛ ۲) څرمن، خور.

**استراحت** (1sturāhát) نر.م. ۱) هوساینه، سوده، دمه کونه، ۲) خوب، بیدېدنه.

**استبداد** (1stubdád) نر.م. ۱) خپل سري، خپل مخي؛ ۲) تېری، ظلم، ناروا، سختي.

**استثمار** (1stusmár) نر.م. د ټیټې طبقې له کار او زیار څخه د لوړې طبقې ګټه اخیستل.

**استثنا** (1stusná) ښځ.م. پرته، پرته والی، له نورو نه بېلول، خاص، بېل.

**استثنایي** (1stusnāyí) ص. نب. ۱) پرته؛ ۲) ځینې، خاص.

**استحصال** (1stuhsál) نر.م. لاس ته راوړل، اخیستل، حاصلول، لاس ته راوستل.

**استحصالول** (1stuhsālawál) مص. مت. لاس ته راوړل، اخیستل، تولیدول.

**استحضار** (1stuhzár) نر.م. احضار، حاضرونه، بلنه، غوښتنه.

**استحقاق** (1stuhqáq) نر.م. ۱) برخه، ونډه؛ ۲) حق؛ ۳) وړتیا، وړتوب.

**استرداد** (1sturdád) نر.م. بېرته اخیستل.

**استري** (1strí) ښځ.م. و ګ. اوتو.

**اسسپور** (asspór) اسپ سوار، سوارکار.

**استسقا** (1stusqá) ښځ.م. ۱) توسخوري، باران غوښتل؛ ۲) د باران ورېدو لپاره د خلکو لمونځ؛ ۳) استسقا یوډول ناروغی ده.

**استعاره** (1stusārá) ښځ.م. ۱) سوالي، په پورنی توګه اخیستل؛ ۲) یوه کلیمه د اصلي ماناو پرځای د نورو ماناوو (کنایه او مجاز) باندې استعمالول.

**استعانت** (1stusānát) نر.م. مرسته غوښتل، معاونت غوښتل، کومک غوښتل.

**استعجاب** (1stusjáb) نر.م. اریانېدنه، تعجب کونه، حیرانتوب.

**استعداد** (1stusdád) نر.م. ۱) وړتوب، لیاقت، قابلیت؛ ۲) وس، مالي قدرت، مالي توان.

**استعفا** (1stufá) د یو رسمي اودولتي کار پرېښودل له رسمي کار نه د غوښتنلیک په وسیله لاس اخیستل.

**استعلام** (1stuslám) نر.م. پوښتنلیک، پوښتنه کونه.

**استعمار** (1stusmár) نر.م. د یوه قوي هېواد سیاسي، نظامي او اقتصادي برلاسی پر یوه ضعیف ملت یا قوم یا ځمکه باندې، ښکېلاک.

**استعمال** (1stusmál) نر.م. کارول، په کارونه، د یو شي څخه کار اخیستنه.

**استغاثه** (1stuǧāsá) ښځ.م. ۱) غاو، شکایت؛ ۲) سیله.

**استغفار** (1stuǧfár) نر.م. ۱) بخښنه غوښتل، د ګناهونو معافي غوښتل؛ ۲) د توبې دعا.

**استغنا** (1stuǧná) ښځ.م. ۱) غرور، کبر، بې پروایي ۲) بې نیازي، نا اړتیا.

**استفاده** (1stufādá) ښځ.م. ګټه اخیستل.

استفسار (istifsár) نر.م. ۱) څرګندونه غوښتنه، توضیح غوښتنه؛ ۲) پوښتنه، سوال.

استفهام (istifhám) نر.م ۱) دڅان د پوهولو هڅه ۲) پوښتنې، د سوالیې نښه.

استقامت (istiqāmát) نر.م. ټینګار، دریدنه.

استقبال (istiqbál) نر.م. ۱) هرکلی، مخې ته وتل؛ ۲) ګانده، راتلونکې زمانه.

استقرا (istiqrá) ښځ. ۱) څیړنه، لټون، تلاش؛ ۲) نتیجه، نتیجه اخیستل.

استقرار (istiqrár) نر.م. ټیکاو، دریدنه، ثبات.

استقلال (istiqlál) نر.م. خپلواکي، آزادي.

استماع (istimá') نر.م. اوریدنه، غوږنیونه.

استمبول (istamból) نر.م. دستمبول، پرپنو، پیستمبول.

استمداد (istimdád) نر.م. مرسته غوښتنه، کومک غوښتنه، مدد غوښتنه.

استمرار (istimrár) نر.م. تلوالی، همېشه توب.

استناد (istinád) نر.م. سندګرځول، سند او دلیل راوړل، دچا پر نظریې باندې اتکا کول.

استنباط (istinbát) نر.م. راایستنه، راوباسنه، کومې نتیجې ته رسیدنه، درک کونه.

استنتاج (istintáj) نر.م. نتیجه اخیستل، منطقي نتیجه اخیستل.

استنجا (istinjá) ښځ. م. د اوداسه په وخت کې د بدن د شرمځایونو مینځل.

استنشاق (istinsháq) نر.م. پوزې ته اوبه اچول، د اوداسه په وخت کې پوزه مینځل.

استنطاق (istintáq) نر.م. پوښتل، پوښتنه، خبرې څنې غوښتل، له چا څخه تحقیق کول.

استوا (istiwá) ښځ. م ۱) هغه فرضي کرښه ده چې د ځمکې کره پر دوو- شمالي او جنوبي برخو وېشي؛ ۲) سموالی، برابروالی.

استوانه (ostūwána) ښځ. م. هغه جسم چې دواړه سرونه او ددې سرونو په امتداد پاتې برخې دایروي شکل ولري.

استوغان (astūğán) نر.م ۱) توان، صبر، طاقت؛ ۲) ستونی، مری، حلق.

استوګن (astogān) نر.م. ج. ص. اوسېدونکی، مېشته کېدونکی، مقیم.

استوګنځی (astogánǰay) نر.م. ۱) داوسېدو ځای؛ ۲) کور، کلی، وطن.

استوګ (astóg) قراري، آرامي، استوګنه.

استوګنه (astogána) ښځ. م. اوسېدنه، مېشتېدنه.

استوګنیز (astogánaiz) نر.م. د استوګنې اړوند، اسکاني، رهایشي.

استوګه (astogá) ښځ. م. و ګ. استوګنه.

استول (astawə́l) مص. مت. لیږل.

استونه (astawána) حمص. لیږنه.

استوونکی (astawūnkay) فا. نر.م. لیږونکی.

استېدل (astedə́l) مص. ل. اوسېدل، استوګنه اختیارول، ځای نیول، مېشتېدل.

استهلاک (istihlák) نر.م. ۱) لګښت، خرڅ، له منځه وړل؛ ۲) کارول.

استیتیک (istitík) نر.م. ښکلا پېژندنه.

استیلا (istilá) ښځ. م. نیول، ترخپل اغېزلاندې راوستل، تر نفوذ لاندې راوړل، نیول.

استیناف (istináf) نر.م. د تېر حکم د نفې کولو غوښتنه، مرافعه غوښتنه.

اسرار (asrár) نر.ج. (د سر جمع) خواله، سرونه، رازونه.

اسراف (isráf) نر.م. بد خرڅي، عبث خرڅ، بې ځایه څرڅ، نوستل.

**اسره** (asrá) ښځ. م. ۱) هیله، آرزو، امید، تمه؛ ۲) صرفه: دریغ، ایله.

**اسره من** (asramán) نر. م. هیله لرونکی، امید لرونکی، ارزومن.

**اسعار** (assár) نر. ج. پیسې، روپۍ، بهرنۍ پیسې چې پېرودل او پلورل کېږي.

**اسفالټ** (ispálṭ) نر. م. تارکول، د سړکونو پخونه، د سړکونو قیرول، ډامبر کول.

**اسقاط** (isqát) نر. م. هغه پیسې چې د مړي د وارثانو له خوا په مړي پسې وېشل کېږي.

**اسقف** (usquf) نر. م. د عیسویانو ملا، د عیسوي دین روحاني شخصیت.

**اسک** (ask) نر. م. خسنی، پچه سره نیول، پچه سره اچول، قرعه کشي.

**اسکېړل** (askerál) مص. مت. خوارول، کمزوري کول، ځپل.

**اسکېلوی** (askelwáy) نر. م. ۱) زګېروی، ورو ورو فریاد، زوېرګی.

**اسل** (asl) نر. م. ج. برابر، سم.

**اسلاف** (aslấf) نر. ج. و. ګ. سلف.

**اسلام** (islấm) نر. م. ۱) تسلیمېدل، منقاد کېدل، سوله کول؛ ۲) د مسلمانانو دین.

**اسلحه** (aslıhá) ښځ. م. وسله، درسته، د جګړې سامان.

**اسلوب** (uslū́b) نر. م. مېتود، طریقه، لاره، طرز.

**اسلول** (aslawə́l) مص. مت. برابرول، سمول، جزا ورکول، اصطلاحاً کوښې پر پښو وَر اسلول.

**اسلېدل** (asledə́l) مص. ل. برابرېدل، سمېدل.

**اسم** (ism) نر. م. نوم، د شخص یا شي نوم.

**اسمان** (asmấn) نر. م. ۱) هسک، هغه اتموسفیر چې ځمکه یې احاطه کړې ده؛ ۲) مجازاً زمانه.

**اسمان چوک** (asmānčók) نر. م. نېغ، لک، عمودا، ولاړ، شخ.

**اسمان څاڅکی** (asmāncāckáy) نر. م. اسمان ګړینګن، یو ډول چینجی دی.

**اسمان څک** (asmāncák) ص. نر. م. جګ، لوړ.

**اسمان څکالی** (asmāncakā́lay) نر. م. اسمان څکالکی، ماښام څکالکی، اسمان ځلکی.

**اسمان کټ** (asmānkáṭ) نر. م. د بوډۍ کټ، په اسمان کې اووه ستوري دي، چې د بوډۍ کټ ورته وايي، د زړې کټ.

**اسمان ګړینګن** (asmāngṛingán) نر. م. و. ګ. اسمان څاڅکی.

**اسمان لاره** (asmānlā́ra) ښځ. م. اسمان لار، کهکشان، په اسمان کې د ملیونونو ستورو سپینه لاره، ترپ.

**اسمنډه** (asmánḍa) د اس د ځغل هومره واټن.

**اسنا** (asnā́) ښځ. م. ښېګنه، فایده، نفع.

**اسناد** (asnā́d) نر. ج. و. ګ. سند.

**اسناد** (asnā́d) نر. م. سند راوړل، استناد کول، د چا پر نظرېې، وینا یا لیکنه باندې تکیه کول.

**اسو** (asū́) نر. م. د هندي کال شپږمه میاشت.

**اس والا** (aswālā́) نر. م. پر آس سپور سړی، هغه سړی، چې آس ورسره وي، د اس خاوند.

**اسوده** (asūdá) ص. نب. هوسا، آرام، بې غمه.

**اسونی** (asūnáy) نر. م. داوسپنې څټک، د اوسپنې څټی، سوټک.

**اسوېلاند** (aswelánd) ص. نر. م. اروا وړی، وړ ستړګی، سوګړ، سوګت، حریص، سیلان.

**اسوېلل** (aswelál) مص. مت. اسویلی کول، سوړ اسویلی کښل.

**اسوېلی** (asweláy) نر. م. سړه سا، سړه سیلوې.

اسهال (ishā́l) نـر. م. نس ناسته، نسه کېدل، کنډوه، له نسه بهېدل، نس خوږی، بسیرن.
اسهام (ashā́m) نر. ج. و گ. سهم.
اسی (asáy) نر. م. یخه شوې پرخه.
اسي (así) ص. نب. ۱) وږ، سترګی، جلوس، چړوس؛ ۲) بخیل.
اسېب (aséb) نر. م. هغه کولمه ده، چې له سږي، ینې او وازګي څخه یې د کوي او کبابوي یې.
اسید (asíd) نر. م. ۱) اسیډ؛ ۲) زونځه، تېزاب یو کېمیاوي مرکب محلول دی چې شین تورنسل یا لتمس ته قرمزي رنګ ورکوي.
اسیر (asír) نر. م. بندي، نیولی، محبوس، قیدي.
اسیمه (aséma) ښځ. م. اسپیمه، اوسیمه، هغه اسپه، چې اس غواړي.
اش (aš) نر. م. ۱) تعجب کلیمه؛ ۲) امېد، هیله، طمع؛ ۳) ګومان، خیال.
اشا (ašā́) ص. ښځ. م. ۱) بلا، بلو، ډاروونکی شی، لویه بلا؛ ۲) غټ، بګ، جسیم.
اشاره (Išārá) ښځ. م. د سر، سترګو او لاسونو په ښورولو سره څوک کومې شي ته متوجه کول.
اشاړي (ašā́ŗi) نر. ج. ۱) غرنی مندتې؛ ۲) دمندتو ښکته، وچ زردالو؛ ۳) تریخ غرنی بادام.
اشپز (ašpáz) نـر. م. پخوونکی، اشپز، هغه سړی چې خواړه پخوي.
اشپیر (ašpír) نر. م ۱) خوږ، شور؛ ۲) بې باکه ډله.
اشتباه (Ištibā́h) ښځ. م. ۱) تېروتنه، ګومان، شک؛ ۲) سهوه، غلطي.
اشتر (aštár) نرم. م. تانګ، تونګ، ګېډه، ګېډبند، د آس د تانګ تسمه.
اشتراک (Ištirā́k) نر. م. ګډون، برخه اخیستل، شریکېدل.

اشتغ (aštáğ) نر. م. وچه خورماني، وچ زردالو، شلیکی، تایفي، اشتق.
اشتغال (Ištiğā́l) نـر. م. بوختېدنه، لګیا کېدنه، مشغولتیا، اموخته کېدنه.
اشتقاق (Ištiqā́q) نـر. م. د یوې ژبې له ګرامري قوانینو سره سم، له یوې ریښې څخه د جوړو شویو کلیمو څرګندونه، جوړونه او رااېستنه.
اشتوکه (aštóka) ښځ. م. روغه، جوړه، پخلاینه.
اشتها (Ištihā́) ښځ. م. خوا، خورمنغ، لوهه، ډوډۍ ته زړه کېدل، خوړو ته زړه کېدل.
اشتهار (Ištihā́r) نـر. م. ډنډوره، خپرونه، شهرت ورکونه، څرګندونه، اوڅارونه، مشهورونه.
اشتیاق (Ištiyā́q) نر. م ۱) لېوالتیا، شوق، آرزو، زړه غوښتنه؛ ۲) اشتها.
اشخار (ašxā́r) نر. م. ج. شخار، توکاړ چې له زمې نومې بوټي څخه لاس ته راځي او د کالیو په مینځلو کې کار ځنې اخیستل کېږي، شتی.
اشخورکه (ašxoráka) ښځ. م. د کوچنیانو یو ډول واسکټ.
اشر (ašár) نر. م. پګړه، ډله ییز وړیا کار.
اشرار (ašrā́r) ص. نر. ج. و ګ. شریر.
اشراف (ašrā́f) نر. ج. ۱) اریستوکراتان، د ټولنې استثمارګرې طبقې ته منسوب خلک؛ ۲) و ګ. شریف.
اشربانی (ašarbāṇáy) نـر. م. هغه څوک، چې په اشرکې ګډون کوي، اشرګرندی، اشرګړی.
اشرپی (ašrapáy) ښځ. م. ج. سکه، اشرفی، د سرو زرو روپۍ (سکه)، یوه پخوانۍ سکه ده.
اشري (ašarí) ص. نب. سرزوری، مست او شهوتي کورنی څاروی؛ ۲) بلندره ګړی، اشرګړی.
اشعار (ašsā́r) نر. ج. شعرونه، و ګ. شعر.

**اشغال** (ıšğā́l) نر. م. ۱) شغل، چارې، کارونه؛ ۲) نيونه، لاندې کونه.

**اشغالول** (ıšğālawə́l) مص. مت. نيول، لاندې کول، تصرف کول.

**اشکال**(۱) (ıškā́l) نر. م. خند، اړيکي، خرنج، مانع، مشکل، سختي.

**اشکال**(۲) (aškā́l) نر. ج. و ګ. شکل.

**اشکونی** (aškūṇáy) نر.م. ۱) سرشکونه، سرشوکارې؛ ۲) د هلکانو يوه لوبه ده.

**اشکي** (áški) اد. د تحسين کليمه، شاباس! آفرين.

**اشلوک** (ašlū́k) نر. م. (ج. اشلوکونه) شعر، منظوم کلام.

**اشنا** (ašnā́) نر. م. ملګری، انديوال، دوست.

**اشنايي** (ašnāyí) ښځ. م. ملګرتيا، دوستي، پېژندګلوي.

**اشو** (ašū́) نر.م. ۱) په ټوکر د کور، خونې يا انګر پاکول؛ ۲) د کتاب حاشيې؛ ۳) ص. نر. م. سپېڅلی، مقدس، پاک.

**اشوا** (ašūwā́) ص. نب. رسوا، بدنام، افشا.

**اشواکول** (ašwakāwə́l) مص. مت. رسواينه، بدنامول، شرمول، افشا کول، بې پردې کول.

**اشواګر** (ašwāgə́r) افشاګر، رسواکوونکی.

**اشواره** (ašwārá) ښځ. م. لچره، کنجره، بې حيا او بې شرمه ښځه.

**اشوب** (ašób) نر. م. ۱) شور، ځوږ، الهګوله؛ ۲) افت، بدبختي؛ ۳) د سترګو خوږ (ليچ).

**اشورګ** (ašorág) نر. م. ۱) غټ رګ؛ ۲) حرکت، خوځېدل؛ ۳) دغاښونو او ستونی يو ډول دوا ده.

**اشول** (ašól) نر.م. شور، غوغا، ژړا او فرياد.

**اشه** (ašá) اد. ايشه، اوشه، يېخ، خره ته د شړلو پر وخت ويل کېږي.

**اشيا** (ašyā́) نر. ج. و ګ. شی.

**اښ** (aṣ) نر.م. سوچ، فکر، سد، تأمل.

**اښوه** (aṣwá) ښځ. م. تلوسه، ښيره، خوا، اشتها، د زړه غوښتنه، ګبنی، ارنی، تپاک.

**اښوېران** (aṣwerā́n) نر. م. وينا، خبرې اترې.

**اښی** (aṣáy) نر.م ۱) دمه، سياله، آرام، دده لګول، ساسمول؛ ۲) وقفه.

**اصابت** (ısābát) نر. م. لګېدنه، پر نښه لګېدل.

**اصالت** (asālát) نر. م. اصليتوب، هډواله، شرافت، ساهوتوب، نجابت.

**اصحاب** (ashā́b) نر. ج. ۱) ملګري، مله، ياران؛ ۲) د حضرت محمد (ص) ياران او ملګري.

**اصرار** (ısrā́r) نر.م. ټينګار، تاکيد.

**اصراف** (ısrā́f) نر. م. لګښت، مصرفول، مخارج.

**اصطکاک** (ıstıkā́k) نر.م. سولول، مښل.

**اصطلاح** (ıstılā́h) ښځ. م. ۱) داسې ژبنی ترکيب چې ټولې کليمې په خپلو اصلي ماناوو نه استعمالېږي؛ ۲) ايډيم، ترم؛ ۳) محاوره.

**اصغري** (asğarí) ص. نب. ډېر لږ، لږ تر لږه، تر لږو لږ، د لږ والي کښتنی درجه.

**اصل** (asə́l) نر. م ۱) آره، بنسټ، ښيخ، بنياد، مونډ، جرړه؛ ۲) اصليت، حقيقت؛ ۳) نسب، ذات؛ ۴) سوچه، نګه؛ ۵) اصيل، د ښې کورنۍ.

**اصلاح** (ıslā́h) ښځ. م ۱) سمون، ښه کول، سمول، منظمول؛ ۲) جوړه، روغه، سوله.

**اصلاحي** (ıslāhí) ص. نب. ۱) د سمون، د سمښت؛ ۲) د جوړې، درغاونې، د روغې.

**اصليت** (aslıyát) نر.م. ماهيت، طبيعت، شته والی، خاصيت.

**اصول** (osū́l) نر. ج. لاره، اساسات، مېتود، قاعده، اصلونه.

**اصولنامه** (osulnāmá) ښځ. م. ۱) آرلیک، اساسنامه، لایحه، منشور؛ ۲) د یوه دولتي تشکیل اړوند مقررات.

**اصولي** (osūlí) ص. نب. بنیادي، بنسټیز، اساسي، قانوني، له لارې سره سم، له قانونه سره سم.

**اصیل** (asíl) ص. نر.م. ۱) سوچه، ښه، نیږه، خالص؛ ۲) د ښې کورنۍ؛ ۳) درونډ، شریف.

**اصیلتوب** (asiltób) نر.م. درونډ والی، ښه سړیتوب، سوچه والی، اصیل والی.

**اضافت** (izāfát) نر.م. په ګرامر کې د دوو نومونو ترمنځ رابطه؛ «د احمد کتاب». (د) د اضافت توری دی.

**اضافه** (izāfá) ص. نب. ۱) زیات؛ ۲) ښځ. م. زیاتونه، زیاتېدنه، ډېرونه، زیات والی.

**اضافي** (izāfí) ص. نب. زیات، ډېر.

**اضطراب** (iztiráb) نر.م. تشویش، ناکراري.

**اضطراري** (iztirári) ص. نب. ۱) فوري، فوق العاده؛ ۲) ناکراري، ډار، خطر.

**اطاعت** (itāʕát) نر.م. منل، غاړه ایښودل.

**اطراف** (atráf) نر.م. ۱) خواوې، څرمې، غاړې، اړخونه؛ ۲) شا وخوا، ۳) په باره کې؛ ٤) دښار نه د باندې سیمې.

**اطرافي** (atráfí) ص. نب. کلیوال، له ښاره بهر اوسېدونکی، اطراف ته منسوب.

**اطفا** (itfá) ښځ. م. ۱) اور وژل، اور مړ کول؛ ۲) چوپول، خاموشول، ارضا کول.

**اطفائیه** (itfāiyá) ص. ښځ. م. اور وژونکې.

**اطلاع** (itláʕ) ښځ. م. خبر، خبرتیا، خبرونه.

**اطلاعیه** (itlāʕiyá) ښځ. م. خبرتیا، خبرداری.

**اطلاق** (itláq) نر.م. منسوبونه، محسوسول، دلالت.

**اطمینان** (itminān) نر.م. ډاډ، ډاډګیرنه، ډاډینه، پوراینه، تسلي، د زړه دمه.

**اظهار** (izhār) نر.م. ۱) څرګندونه، ښکاره کونه، جوتونه؛ ۲) د عقیدې یا فکر بیانول.

**اظهارېدل** (izhāredál) مص. ل. ۱) څرګندېدل، ښکاره کېدل؛ ۲) د عقیدې یا فکر بیانېدل.

**اعاده** (iʕādá) ښځ. م. ۱) راستنول، بېرته ورکول؛ ۲) بیا جوړېدل؛ ۳) بیا قایمول؛ ٤) د پورپرېکړه

**اعاشه** (iʕāšá) ښځ. م. ۱) خوراکي مواد، ارتزاقي مواد؛ ۲) غذا، خواړه، خوراک.

**اعانه** (iʕāná) ښځ. م. مرسته، بسپنه، چنده.

**اعتبار** (iʕtibār) نر.م. ۱) ویسا، باور، اعتماد؛ ۲) کرېډت.

**اعتبارلیک** (iʕtibārlík) نر.م. باورلیک، اعتبارنامه، تصدیق نامه.

**اعتباري** (iʕtibāri) ص. نب. معتمد، باوري، د ویسا او ډاډ وړ.

**اعتدال** (iʕtidāl) نر.م. پوبرابر، مینځومانه، مینځکوره، نه کم نه زیات، میانه حاله.

**اعتذار** (iʕtizár) نر.م. عذر غوښتنه، بخښنه غوښتنه.

**اعتراض** (iʕtiráz) نر.م. ګوته نیول، تنقید، نوغی نیول، نه منل، مخالفت کول، اړنګ نیول.

**اعتراف** (iʕtiráf) نر.م. منل، اقرار، پر خپله ګناه او یا کړو باندې اقرار کول.

**اعتصاب** (iʕtisáb) نر.م. پارېدنه، دله ییزه او منظمه پارېدنه، چې کارګران یې د خپلو حقوقو د غوښتلو لپاره د پانګوالو په مقابل کې کوي.

**اعتقاد** (iʕtiqád) نر.م. ګروهه، عقیده، یقین.

**اعتکاف** (i(ʕ)tikáf) نر.م. انزوا، په یوه ګوټ کې له خلکو نه ګوښه کښېناستل.

**اعتلا** (ʕıstılā́) ښځ. م. ۱) لوړېدنه، جګوالی؛ ۲) لوړېدل، جګېدل، هسکېدل.

**اعتماد** (ʕıstimā́d) نرم. م. ډاډ، باور، اطمینان.

**اعتماد نامه** (ʕıstimādnāmá) ښځ. م. باورلیک.

**اعتنا** (ʕıstinā́) ښځ. م. پام، پاملرنه، پام کول.

**اعتیاد** (ʕıstiyā́d) نر. م. عمل ګرځېدل، روږدېدنه، خوی ګرځېدل، په نشه یي شیانو اموخته کېدل.

**اعجاز** (ʕısjā́z) نر. م. کوم فوق العاده کار کول، معجزه ښودل.

**اعدام** (ʕısdā́m) نر. م. ۱) وژل، مړ کول، له منځه وړل، ۲) وژل کېدل، له منځه تلل.

**اعراب** (ʕısrā́b) نر. م. د یوې کلیمې د سمو لوستلو لپاره د تورو پرسر او یا لاندې حرکتونه ورکول؛ لکه: زور، زېر، پېښ، غړوندی.

**اعراف** (āʕsrā́f) نر. م. ۱) د جنت او دوزخ تر منځ یو مقام؛ ۲) اوچت ځای، د چرګ تاج.

**اعصاب** (aʕssā́b) نر. ج. (د عصب جمع) هغه نري تارونه چې د بدن حس او حرکت د هغوی په وسیله ترسره کېږي او هم د ټول بدن چارې کنټرولوي؛ ۲) هغه تارونه، چې غړي او هډوکي سره تړي.

**اعطا** (ʕıstā́) ښځ. م. بخښنه، سوغات، تحفه، ښانده، په وړیا توګه چاته یو شي ورکول.

**اعظم** (aʕẓám) ص. نر. م. ۱) ډېر لوی، ډېر ستر؛ ۲) ډېر لوړ.

**اعظمي** (aʕẓamí) ص. نب. ۱) خورا زیات، زښت ډېر، حد اکثر؛ ۲) پورتنی ځوکه، آخرنی اندازه.

**اعلام** (ʕıslā́m) نر. م. څرګندونه، خبر، خپرونه، نشرول، مشهورول.

**اعلامول** (ʕıslāmawā́l) مص. مت. ۱) څرګندول، خبرول؛ ۲) خپرول، مشهورول، معلومول.

**اعلامیه** (ʕıslāmyá) ښځ. م. ۱) څرګندونه، خبرونه؛ ۲) هغه پرېکړه، چې دوو ډلو یا دوو حکومتونو د ګډ نظر په پای کې خپرېږي؛ ۳) د کوم دولت یا حزب له خوا د عامه خبرتیا لپاره د متن خپرېدنه.

**اعلان** (ʕıslā́n) نر. م. څرګندونه، ښکاره کونه، په ډاګه وینه، سپینه وینا، خبرونه، خبرتیا.

**اعلانول** (ʕıslānawā́l) مص. مت. خبرول، څرګندول، ښکاره کول، په ډاګه کول.

**اعلی** (aʕlā́) ص. نب. ډېر لوړ، ډېر ښه.

**اعمار** (ʕısmā́r) نر. م. ودانول، ابادول، جوړول.

**اعمال** (aʕsmā́l) نر. ج. چارې، کارونه، عملونه.

**اعیان** (aʕsyā́n) نر. ج. ۱) مخور، مشران، سپین ږیري؛ ۲) په پارلمان کې د مشرانو جرګې غړي.

**اغتشاش** (ʕığtışā́ş) نر. م. اړودوړ، شورش، د حکومت په ضد وسله وال پاڅون.

**اغدوغ** (ağdóğ) نر. م. تکي، هغه دغه، اړوت غروت، اګرمګر، چلوټی.

**اغذیه** (ağzıyá) ښځ. ج. د غذا جمعه، خواړه.

**اغر** (ağár) نر. م. غشی په لیندۍ ځای پر ځایول.

**اغراض** (ağrā́z) نر. ج. د غرض جمع، موخې، مقصدونه، مطلبونه، نیتونه، ارادې.

**اغراق** (ʕığrā́q) نر. م. ۱) غرقول؛ ۲) زیاته مبالغه؛ د بدیع په اصطلاح هغه صنعت دی چې د یو شي ښه والی او بدوالی یا د هغه تصدیق او تکذیب تر حد زیات قوت ورکوي.

**اغروغ** (ağróğ) و ګ. اغدوغ.

**اغزن** (ağzán) ص. نر. م. ج. اغزي لرونکی، له اغزو څخه ډک، اغزن بوټي، اغزنه لاره.

**اغزی** (ağzáy) نر. م. ازغی، ځوز، د ځینو بوټو او ځینو ونو ستنې غوندې تېره ډکي.

**اغزیانه** (ağzyānā́) ښځ. م. هغه ځای چې اغزي ولري - اغزنه ځمکه.
**اغز** (ağz) نر.م. هغه بنسټ دی، چې د وروستاړو په زیاتولو سره د اغزل د حال زمانې ګرامري شکلونه ترې جوړېږي.
**اغزل** (ağzә́l) مص. مت. اخښل، ابښکل، سره ګډول، اوړه لندول او خیشتول.
**اغزنه** (ağzә́na) ښځ. م. و ګ. اغزل.
**اغزونکی** (ağzūnkáy) فا. نر.م. اخښونکی، ابښکونکی، سره ګډوونکی، اوړه لندوونکی او خیشتوونکی.
**اغښل** (ağsә́l) مص. مت. و ګ. اغزل.
**اغفال** (ığfā́l) نر.م. غولونه، تېر ایستنه، غافلونه، دوکه کونه.
**اغفالول** (ığfālawә́l) مص. مت. غولول، تېر ایستل، تیر باسل، دوکه کول.
**اغلب** (ağlә́b) ص. نر. م. ج. ډېر زیات، زیاتره، اکثرا.
**اغل** (ağә́l) نر.م. و ګ. آغل.
**اغلل** (ağlә́l) ل. ۱) ښکلي کېدل، ښایسته کېدل؛ ۲) ایسېدل، ښکاره کېدل.
**اغماز** (ığmā́z) نر.م. غمازي کونه، غندنه، ویارنه.
**اغماض** (ığmā́z) نر.م. سترګې پټول، ځان ناګاره اچول، غړنده تېرېدل.
**اغوا** (ığwā́) ښځ. م. غولونه، تېر ایستنه، له لارې ایستل، ښویول، دوکه کول، ختا ایستل.
**اغوت** (ağwә́t) نر.م. زړه غله، نمجن غنم، دوبجن غنم، دوپچنه غله، دوپچن غنم، چړېسن.
**اغور** (ağór) نر.م ۱) د لرګي لنګری، د لرګي اونګ یا بغری؛ ۲) لرګین چوکی چې د پخلي په ځای کې کار ترې اخلي؛ ۳) تتې، لرګینه کاسه.
**اغوړ** (ağór) نر.م. غچ، وار، بدله، بدل، انتقام.
**اغوړل** (ağorә́l) مص. مت. غوړل، غښتل، تاوول (د مزي، تار، پړي، او داسې نورو).
**اغوز** (ağūz) نر.م. مټک، غوز، اکړ، غز.
**اغوستل** (ağūstә́l) مص. مت. تن پټول، جامې اغوستل، کالي او جامې په تن کول.
**اغوند** (ağū́nd) نر.م. هغه بنسټ دی چې د وروستاړو په زیاتولو سره د اغوستل د حال زمانې ګرامري شکلونه جوړوي.
**اغیار** (ağyā́r) نر.م. ج. ۱) پردي، بېګانه، ناخواله ۲) رقیب، مخالف، دښمن-
**اغېز** (ağéz) ښځ. م. (ج. اغیزونه)، اثر، تأثیر.
**اغېزمن** (ağezmә́n) نر.م. متأثر.
**اغېزناک** (ağeznā́k) نر.م. اغېز لرونکی، مؤثر، اثر لرونکی.
**اغېړ** (ağéṛ) نر.م. ۱) بدهضمي، د خېټې خرابي؛ ۲) خنډ، ضد.
**اغېړل** (ağeṛә́l) مص. ل. ۱) بدهضمه کېدل، خېټه خرابېدل؛ ۲) خواتوری کېدل.
**اف** (u,uf) اد. هغه توری دی چې د حسرت په وخت کې ویل کېږي.
**افاده** (ıfādá) ښځ. م. فایده رسونه، ادا کونه، ښکاره کونه، څرګندونه، بیانونه.
**افتتاح** (ıftitā́h) ښځ. م. پرانیستنه، پیل، شروع.
**افتخار** (ıftixā́r) نر.م. ویاړ، فخر، نازېدل.
**افتخاري** (ıftixārí) ص. نب. ۱) ویاړنی، بې بیې، بې بدلې؛ ۲) نا رسمي (غړیتوب).
**افترا** (ıftirā́) ښځ. م. تور، تهمت، درواغ.
**افراد** (afrā́d) ج. نر. و ګ. فرد.
**افراط** (ıfrā́t) نر.م. تر حد تېر، له اندازې زیات، زیاتی، ډېروالی، د اعتدال تر بریده پورته.

**افراطي** (ifrātí) ص. نب. زياتي كوونكى، له اعتدال نه وتونكى.

**افزار** (afzā́r) نر.م. آلات، اسباب، اوزار.

**افسار** (afsā́r) و گ. ملونه، ترسېرى، اوسار، تېسرى.

**افسانوى** (afsānawī́) ص. نب. خيالي، تصوري، غير واقعي.

**افسانه** (afsāná) ښځ. م. خيالي كيسه، نكل، داستان، حكايت.

**افسر** (afsár) نر.م. ۱) خول، تاج، كركره، تېول؛ ۲) منصبوال (بريدمن، تورن...)

**افسوز** (afsóz) نر.م. د تأسف كليمه، افسوس، ارمان، تاپ، كاشكې.

**افسوس** (afsós) نر.م. و گ. افسوز.

**افسون** (afsū́n) نر.م. كوډې، سحر، جادو.

**افشاء** (ifšā́) ښځ. م. ۱) رسوا؛ ۲) څرگندونه، لوڅونه، بربنډونه، لغړونه.

**افضل** (afzál) ص. نر. م. ډېر ښه، غوره، منلى، اعلى، ډېر لوړ، په پوهنې يا حسب كې لوړ.

**افطار** (iftā́r) نر.م. روژه مات، روژه ماتى.

**افغانى** (afğānáy) ښځ. م. د افغانستان د پيسو واحد.

**افق** (afúq) نر.م. د آسمان لمن، د آسمان څنډه.

**افقي** (ufūqí) ص. نب. هغه كرښه، چې د ځمكې له سطحې سره برابره پرته وي.

**افواه** (afwā́) ښځ. م. آوازه، انگازه، شايعه.

**اقارب** (aqārib) نر. ښځ. ج. اقرب (خپل) جمع، خپلوان، خپښان، دوستان، نيږدې خپلوان.

**اقامت** (iqāmát) نر.م. اوسېدنه، استوگنه.

**اقبال** (iqbā́l) نر.م ۱) بخت، سخ، طالع؛ ۲) برخه، قسمت، نصيب.

**اقتباس** (iqtibā́s) نر.م. ۱) روښنايي اخيستنه، گټه اخيستنه؛ ۲) د بديع په اصطلاح د قرآن عبارت يا د حديثونو راوړل، په نثر يا نظم كې؛ ۳) له كتاب يا ورځپاڼې نه د كوم عبارت نقلونه.

**اقتدا** (iqtidā́) ښځ. م. ۱) د چا پيروي كول، په چا پسې درېدنه (لكه په لمونځ كې).

**اقتدار** (iqtidā́r) نر.م. ۱) واك، اختيار، وس، زور، قدرت؛ ۲) لاس، غلبه.

**اقتصاد** (iqtisā́d) نر. م. ۱) ميانه روي؛ ۲) شته؛ ۳) سپما، وتېه؛ ٤) د يوې ټولنې د توليدي روابطو او توليدي قواوو مجموعه.

**اقتصادي** (iqtisādí) ص. نب. ۱) مالي، مادي؛ ۲) د سپما، دوتې، وته ييز.

**اقتصاديات** (iqtisādyā́t) نر. ج. شتمنى.

**اقتضا** (iqtizā́) ښځ. م. غوښتنه، تقاضا.

**اقتفا** (iqtifā́) ښځ. م. پيروي، په چا پسې تگ، تقليد، د چا پر پله تلل.

**اقدام** (aqdā́m) نر. ج. و گ. قدم.

**اقدام** (iqdā́m) نر.م. ۱) پيل، شروع؛ ۲) په كوم كار لاس پورې كول؛ ۳) تدبير، اجراآت.

**اقدس** (aqdás) ص. نر. ج. ډېر سپېڅلى، ډېر پاك، سپين، سپېڅلى.

**اقرار** (iqrā́r) نر.م. ۱) ويل، غاړه اېښوول، منل، اعتراف؛ ۲) تاييدونه.

**اقرارول** (iqrārawál) مص. مت. ۱) قايلول، اعتراف پرې كول؛ ۲) تاييدول.

**اقربا** (aqrabā́) نر. ج. (د قريب جمع) خپلوان، خپښان، نسكېران، د وينې خپلوان.

**اقلاً** (aqalā́n) ق. لږ تر لږه، كم تر كمه، څه ناڅه.

**اقليت** (aqalyát) نر.م. لږوالى، لږتوب، لږتيا، كمى، كمتيا، كمښت، كموالى.

**اقلیم** (aqlím) نر. م. ۱) آب و هوا، دجوي حادثاتو منځنی حد؛ ۲) لیوالتیا.

**اقناع** (ɪqnā́ʔ) ښځ. م. قانع کول، خوشالول، راضي کول.

**اکا** (akā́) نر. م. تره، کاکا، د پلار ورور.

**اکابر** (akā́bɪr) نر. ج. مشران، لویان، غټان، پاخه خلک، سپین ږیري، د سر خلک.

**اکاډیمي** (akā́ḍemi) په آتن کې د یوه باغ نوم و چې اپلاتون به په کې تدریس کاوه، اوس د علومو او فنونو لوی مرکز ته اکاډیمي وایي.

**اکاډیمیسن** (akāḍemicín) د علومو اکاډمي ترټولو لوړه رتبه.

**اکاړ** (akā́ṛ) ص. نر. م. ۱) بې رحمه، ظالم، دښمن؛ ۲) بروس، وچ، خوشکتی.

**اکاړي** (akā́ṛi) ښځ. م. ۱) بې رحمي، دښمني، ظلم؛ ۲) تریخوالی، وچ توب.

**اکبر** (akbár) ص. نر. م. ډېر لوی، ډېر ستر.

**اکبرۍ** (akbaráy) ښځ. م. ج. یو ډول خوږه ده.

**اکبري** (akbarí) ص. نر. م. لوی، زیات، ډېر ستر.

**اکتساب** (ɪktɪsā́b) نر. م. ۱) کسبونه، لاس ته راوړنه، گټنه، حاصلونه؛ ۲) گټه، حصول.

**اکتسابي** (ɪktɪsābí) ص. نب. ۱) په کسبي توگه لاس ته راوړ شوی؛ ۲) گټل شوی.

**اکتشاف** (ɪktɪšā́f) نر. م. پیدا کول، څرک ایستنه، کشفونه.

**اکتشافي** (ɪktɪšāfí) ص. نب. د پلټنې، د څرک ایستنې، د کشفولو د راز موندلو.

**اکتفا** (ɪktɪfā́) ښځ. م ۱) بسنه، پوره والی، قناعت؛ ۲) خوښي، رضایت.

**اکتفا کول** (ɪktɪfākawә́l) مص. ل. ۱) بسېدل، کفایت کول؛ ۲) قناعت کول، قانع کېدل.

**اکټ** (ákṭ) نر. م. ۱) کار، عمل، رفتار، په صحنه او تیاتر کې د لوبغاړي عمل؛ د نمایش پرده.

**اکټر** (ɪkṭár) نر. م. د تیاتر او سینما لوبغاړی.

**اکثره** (aksará) ق. ډېر، زیات، ډېر زیات.

**اکثریت** (aksaryát) نر. م. ډېروالی، زیاتوالی.

**اکر** (akár) نر. م. (۱) حالت، وضعیت، صورتحال؛ ۲) سرگرځېدنه، په سترگو تیاره راتلنه.

**اکراه** (ɪkrā́) ښځ. م. کرکه، کرېنه، نفرت.

**اکرب** (akráb) ص. نر. م. بې وسه، بېوزلی، کریابه.

**اکره** (akará) ښځ. م. ۱) سپینه وزه؛ ۲) شنډه، وچه (ښځه، بزه او...)

**اکرۍ** (akaráy) ښځ. م. ج. کنډوالې، ویرانې، خرابې، ویجاړې.

**اکړ** (akә́ṛ) ص. نر. م. ۱) وچ، شنډ؛ ۲) مایوسه، نا امیده، نهیل.

**اکله** (akalá) ښځ. م. ۱) بخیله ښځه، سپېره او شومه ښځه؛ ۲) خوراکي دانه، هغه دانه چې د انسان غوښنه خوري او له منځه یې وړي.

**اکمال** (ɪkmā́l) نر. م. بشپړونه، پوره کونه.

**اکمالات** (ɪkmālā́t) نر. ج. ۱) بشپړونې، سرته رسونې؛ ۲) په عسکري کې د ضرورت په اساس تجهیزاتو ته ویل کېږي.

**اکوبکو** (akū-bakū́) نر. م. ۱) د یوه مرغه نوم دی؛ ۲) د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**اکارډیون** (akārḍɪyū́n) نر. م. د موسیقۍ یوه پرده لرونکې آله ده.

**اکوړ** (akóṛ) نر. م. متېک، غوز، چارمغز.

**اکوک** (ak(o,ū)k) نر. م. اخکوک، غوره، شنه (مېوه چې لا خامه وي)، کچه (اومه) مېوه.

**اکانومېسټ** (akanoméṣṭ) نر. م. اقتصاد پوه، د اقتصاد متخصص، ایکونومېسټ.

**اکوڼی** (akoṇáy) نر.م. کوڼی، تندی خوسکی، د ځارویو بچی، چکوڼی، څکوړی.

**اکی** (akáy) ښځ. م. د مور، ترور او سپین سرو ښځو لپاره د عزت او احترام کلیمه.

**اکېړ** (akéṛ) نر.م. په لښته، مزي او نورو کې د کبانو، انځرو تمبل او پېیل.

**اکېڼی** (akeṇáy) نر.م. ۱) د ژی هغه تسمه، چې د اوبو راوړلو په وخت کې غاړې ته اچول کېږي؛ ۲) د تانسټې کمانچه، کمانکه.

**اګاه** (agā́,agā́h) ص. نب. پوه، خبر، باخبره.

**اګاهانه** (agāhā́na) په ځانخبرۍ ډول، شعوري.

**اګاهو** (agahū́) ق. لومړی، ړومبی، مخکې له مخکې، وړاندې.

**اګاهي** (agāhī́) ځانخبري، خبرتیا، شعور.

**اګر** (agár) نر.م. ۱) سپک سړی، بې لارې سړی؛ ۲) پ. مربی، بندي؛ ۳) د ربط توری، که، که څه هم، په دې شرط؛ ٤) مانع، بهانه، تردد.

**اګل** (agál) نر.م. ۱) هغه ځای چې کلالان خاورې ځنې راوړي؛ ۲) ایراو، هغه کندې، چې د اوبو د زیم د وچولو لپاره جوړېږي؛ ۳) کنده، خندق.

**اګڼ** (agáṇ) نر.م. خړاره، یوه وړوکې خړبخونه مرغۍ ده چې ښه آواز لري.

**اګو** (agó) ښځ. م. ترور، د پلار یا مور خور، پردۍ ښځې ته هم د احترام لپاره ویل کېږي.

**اګو** (īgó) نر.م. رو، زه، ضمیر، نفس، ځان.

**اګوړی** (agoṛáy) ښځ. م. پښندی، هغه پړی یا مرانده چې د ځارویو پښې پرې تړي.

**اګویزم** (īgwizám) نر.م. خود پرستي، ځان ستاینه.

**اګی** (agáy) ښځ. م. ج. و ګ. هګی.

**اګېچ** (agéč) نر.م. هغه نوکر، چې د ورځې چېرته کار کوي او د شپې خپل کور ته ځي.

**اګېړی** (ageṛáy) نر.م. ۱) و ګ. خلوابکی؛ ۲) اغېړی، هغه پړی چې د غړکې او ګوډې خوله پرې تړي.

**اګېیل** (ageyál) مص. مت. ۱) چاپوړې ملنډې او توکې کول؛ ۲) تحریکول؛ ۳) د بوجۍ او جوال خوله ګنډل یا تړل.

**الا الا** (alā́-alā́) ښځ. م. ۱) ګډوډي، بې نظمي؛ ۲) د خوښۍ او جوش ناري.

**الا بلا** (alā-balā́) ښځ. م. په ځینو عبارتونو او متلونو کې د ټول او هرڅه په مانا راځي.

**الاجي** (alā́ji) ښځ. م. ۱) هغه آله چې پوندانه او پنبه سره بېلوي، حلاجي؛ ۲) د انځر د ونې یو ډول چینجی.

**الاچه** (alā́ča) ښځ. م. الچه، یو ډول پتهٔ داره (اشه داره) او راداره توته ده.

**الاچي** (alā́či) ښځ. م. هېل، لاچي.

**الاداد** (alādā́d) نر.م. د کوچنیانو یو راز لوبه ده.

**الاډو** (alaḍū́) نر.م. د ترکانانو یو ډول برمه ده.

**الاډوبه** (alāḍū́ba) ښځ. م. ۱) اړ دوړ، داړې ګړې وخت؛ ۲) ګنګس، بېحاله.

**الاډونی** (alā́ḍūnay) نر.م. د ترکانانو یو ډول لویه برمه ده.

**الارغه** (alā́rğa) نر.م. الیارغه؛ یو ډول بړګ (خړ سپین) مرغه دی چې اوږدې پښې لري.

**الاستي** (alā́stí) ص. نب. ۱) ناڅاپي، نابېره؛ ۲) غایب، ورک.

**الاشه** (alā́ša) ښځ. م. زامه، جامه، برغښی.

**الاکول** (alākawál) مص. ل. په بېړه ځغاستل، منډه وهل، تېښته کول.

**الالول** (alālawál) مص. مت. ۱) حلالول، ذبح کول؛ ۲) روا کول، د خوړلو وړ ګرځول.

الاورتي (alāwarti) ښځ. م. ج. ۱) بې ځایه خبرې، زیاتې خبرې؛ ۲) بې ځایه حرکتونه.
الاماني (alāmāni) ص. نب. انقلابي ګډوډي.
الباب (albāb) نر. ج. عقلونه، فکرونه، اندونه.
البته (albatá) ق. ۱) بې له شکه، بېشکه، ښکاره ده؛ ۲) ممکن، ښایي چې، وې به.
البسه (albasá) ښځ. م. جامه، کالي، نمري.
البشاکه (albašākā) ښځ. م. ۱) نمونه، نښه، خاپ؛ ۲) د ښځلونکو نښو توصیف.
البلی (albaláy) نر. م. زاری کوونکی، خاکسار، عاجز، الون بلون کوونکی.
البوم (albūm) نر. م. هغه کتاب چې عکسونه یا د پوستې ټکټونه په کې نصبېږي.
البنګ (albung) ص. نر. م. ۱) ګونګ، ګونګی، چاړا؛ ۲) خاموش، چپ، بې ژبې.
البومین (albomín) نر. ج. د پروټینونو مخلوط، د هګۍ سپین.
الپته (alápatá) ص. نب. وارخطا، اوتر، تنګ تریت، پرېشانه، هیبت اخیستی.
الپي الا (alpialā) ص. نب. نېستمن، ډېر خوار، بې وسه، خوار پړ ک، بې شتو.
التباس (altıbās) نر. م. ګډون، سره ګډېدنه، ورته والی، ګډوالی، مشابهت.
التجا (altıjā) ښځ. م. ۱) غوښتنه، هیله، آرزو؛ ۲) ننواتې، عذر، زاری، ځولۍ غوړونه.
التزام (altızām) نر. م. پرځان لازم ګڼل، په غاړه اخیستل.
التفات (altıfāt) نر. م. ۱) پاملرنه، توجه، نظر؛ ۲) اخلاص، مینه، مهرباني.
التماس (altımās) نر. م ۱) پلټنه، غوښتنه، خواست ۲) عجز، زاري، منت، دعا.
التوا (altiwā) ښځ. م. ۱) ځنډ، ډیل؛ ۲) خبره ځنډول، کیسه معطلول، ایسارول.
التهاب (altıhāb) نر. م. ۱) پړسوب، میکروبي کېدل؛ ۲) تاو اخیستل، بلېدل، هیجان.
التیماتوم (altımātūm) نر. م. ۱) خبرداری، ګواښ، اخطار، آخرنی اعلان؛ ۲) د جنګ اعلان، د مقابلې بوغ.
التیام (altiyām) نر. م. سره مښلېدل، د زخم ښه کېدنه، روغېدنه، غېړنیول.
الچه (alačá) د باښې یو ډول دی.
الچه (alačá) ښځ. م. و ګ. الاچه.
الڅپک (alcapák) نر. م. څپک، ورغ، نری او لړه واوره، چې د ځمکې پر مخ پرته وي، ګرد.
الحاد (alhād) نر. م. له دین نه ګرځېدل، د خدای نه انکار کونه، بې دیني او کفر.
الحاق (alhāq) نر. م. سره یو ځای کېدنه، تړون، ضمیمه کېدنه.
الحاقیه (alhāqyá) ښځ. م. ضمیمه، د کوم تعمیر یا ځمکې نوره برخه.
الزام (alzām) نر. م ۱) تور، تومت؛ ۲) پړه، ملامتیا.
الستي (alastí) ص. نب. ۱) له ازله، له اوله، له شروع څخه؛ ۲) ناځاپي، نابېره.
الستیکي (alastikí) ص. نب. ارتجاعي، انعطاف قبلوونکی.
السي (alási) ښځ. ج. د سونډو (کتان) تخم، چې تېل ځنې باسي.
الش (alāš) نرم. بدلونه، معاوضه، الېش.
الشول (alašawə́l) مص. مت. بدلول، عوضول.
الغاء (alğā) ښځ. م. لغوه کېدنه، له منځه وړنه.
الغاء (alğā) ښځ. م. د بلغا او تلغاو سره په ترکیبي ډول د شور ماشور په ماناوو سره استعمالېږي.

**الغاسه** (alğāsá) ښځ. م. ۱) د دوډۍ يو ټوټ ک، يوه ټوټه دوډۍ؛ ۲) ص. نب. ۱) تلولي، وارخطا، پرېشانه؛ ۲) غمجن، خپه.

**الغتان** (alğatān) ص. نر. م. ۱) ناارامه، شوخ؛ ۲) ګټلناک، جهل کوونکی، هوډي، ضدي.

**الغوتلغو** (alğáw-talğáw) نر. م. ج. شور، ځوږ، شور ماشور، ګډوډي، بې نظمي، انارشي.

**الغه** (alğá) ښځ. م. کړۍ، حلقه، القه.

**الفبا** (alafbā) ښځ. م. د توریو توررو مجموعه.

**الفت** (ulfát) نر. م ۱) مینه، محبت؛ ۲) خوی نیول، انس نیول؛ ۳) د پښتو ژبې شاعر چې بشپړ نوم یې «ګل پاچا الفت» دی.

**القا** (ilqā) ښځ. م. ۱) اچول، د چا ذهن ته د کومې موضوع رسونه؛ ۲) منته.

**القاب** (alqāb) نر. ج. و ګ. لقب.

**القاح** (ilqāh) ښځ. م. بلاربونه، حامله کونه، ورله ونه، ورله کونه.

**الک** (alák) نر. م. و ګ. هلک.

**الکترومیتر** (ilíktrómitár) نر. م. په برق لرونکو شیانو کې د برق د مقدار د ښکاره کولو آله.

**الکترون** (ilíktrón) نر. م. د اتم د هستې د شاوخوا هغه خوځېدونکې ذره چې منفي چارج لري.

**الکتریک** (ilíktrík) ص. نر. م. بربښنا، برق، د بربښنا، برقي.

**الکول** (alkól) نر. ج. یو ډول مایع ده، چې په طب کې کارېږي.

**الکۍ ژبه** (alkáyžaba) ښځ. م. وره ژبه، ژبۍ.

**الکیش** (alkiš) ورکیش، سپی ورکیش کول.

**الګ** (alág) نر. م. شوکانی، یو ډول نرم کانی، چې لوښې ځنې جوړوي.

**لګډ** (algád) نر. م. و ګ. ځوږ.

**الګه** (algá) ښځ. م. شنډه، اکره، وچه.

**الم** (alám) نر. م. ۱) رنځ، ځول، غم؛ ۲) یو ډول بوټی دی، چې شنه هم خوړل کېږي، بوټی یې تراتېز ک هم بولي او تخم یې الم او وورې بولي.

**الماری** (almāráy) ښځ. م. ج. تونۍ، د لرګویا اوسپنې نه جوړه محفظه.

**الماس** (almās) نر. م. یو قیمتي کانی چې له متبلور خالص کاربون نه جوړوي.

**المپیا** (olampiyā) ښځ. م. المپیاد، په لرغوني یونان کې څلور کلن وخت و، چې د اولمپیک لوبې به په کې اجرا کېدې.

**المپیک** (olampík) نر. م. د المپیا لوبې، په لرغوني یونان کې هغه راز راز لوبې چې په هرو څلورو کلونو کې به یو ځل اجرا کېدې.

**المسور** (alamsūr) نر. م. ۱) بې صبري، حرص؛ ۲) شور ځوږ؛ ۳) د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**المسوری** (alamsūráy) ص. نر. م ۱) اروا وړی، ور سترګی، حرص ناک؛ ۲) وران کاری، شریر.

**المغلم** (alamğalám) ص. نر. م. ۱) مکرجن، غولوونکی؛ ۲) نر. م. غولونه، تېر ایستنه.

**النج** (alánj) نر. م. یو ډول سپین ګل والا ونه ده.

**النګه** (alangá) ښځ. م. ۱) دېوال؛ ۲) مورچل، څوکۍ، سنګر.

**الو** (alū) نر. م. (ج. الوګان) کچالو، پټاټې.

**الوا** (alwā) ښځ. م. حلوا، وربښنه، وېرۍ، اوبنه.

**الوار** (alwār) نر. ج. لرګي، چارتراش.

**الواک** (alwāk) نر. م. لید، دید، نظر، تیوري، نظریه، سترګلین.

**الواکي** (alwāki) نظریاتي، تیوریک.

**الواکي ژبپوهنه** (alwākižabpōhana) نظري ژبپوهنه، تیوریکي ژبپوهنه.

**الوان** (alwā́n) نر.م. ۱) دلون جمع، رنگ، ډول، رقم؛ ۲) یو ډول سوررنګه توکر دی.

**الواني** (alwānī́) ص.نب. سوررنګی، سوربخون.

**الوبل** (alūbál) ص. نر. م. څلاند، ځلېدونکی، پرکېدونکی، چرکېدونکی.

**الوتاند** (alwatánd) نر.م. پیلوټ.

**الوتکه** (alūtaká) ښځ. م. طیاره، هوایي جهاز.

**الوتل** (alwatál) مص.ل ۱) ورتل، په هوا ګرځېدل؛ ۲) د چلېدو پیل؛ ۳) د رنګ تتېدل؛ ٤) په زور او قوت له یوه شي د یوې توټې بېلېدل.

**الوتونکی** (alutūnkáy) فا.نر.م. په هوا کېدونکی په هواکې تلونکی، الوتونی.

**الول** (alwál) ق. ۱) ناڅاپه؛ ۲) په زور سره.

**الوول** (alūwál) ص. نب. ول ول، تاوراتاو، غوټې غوټې، پېچ پېچ، ګونجې ګونجې.

**الومل** (alomál) ص. نر. ۱) خورین، پوخ، ډېر پوخ، ښه پوخ؛ ۲) نرم، پوست.

**الوهیت** (ulūhyát) نر.م. خدایي، ښتنوالی، الهي مقام، خدای والی.

**الوی**(۱) (alwū́y) نر.م. ۱) د جوارو توکه او د غنمو وږي، چې په اور پاخه شي؛ ۲) ذاده، وریت.

**الوی**(۲) (alwáy) ص. نر. م. سرابښ، اروا وږی، وږ سترګی، سترږی، حریص.

**الوی** (alawáy) ۱) د ندا توری چې د عاطفي حالاتو په وخت له خولې راوځي؛ ۲) ښځ. م. یوه خړه مرغۍ ده، چې اوږده لکۍ او تېز آواز لري.

**الوی کول** (aloykawál) مص. مت. وګ. الویل.

**الویل** (aloyál) مص. مت. الوی کول، ذاده کول، وریتول؛ ۲) الهیل، تورول، په اور کړول.

**الوېزان** (alwezā́n) ص. نر. م. هک پک، وارخطا، سرګردان، اړند کړند، ترهور، پرېشانه.

**الوېښ** (alwéṣ̌) نر.م. وږمه، نری باد، شمال.

**اله**(۱) (alá) اد. د اداتو له جملې څخه دی او پر بېره باندې د تاکېد پروخت استعمالېږي.

**اله**(۲) (ila, alá) ښتن، معبود، خدای.

**الها** (ilhā́) ښځ. م. تلوسه، هیله، آرزو، امید.

**الهاکي** (alhā́ki) ښځ.ج. ښېراوې، ښېرا، ښېرې، بده دعا.

**الهام** (ilhā́m) نر.م. په زړه کې نوې غیبي اندېښنه پېداکېدل، په زړه کې اچول.

**اله بله** (alabalá) ښځ. م. ۱) زاري، غوښتنه؛ ۲) چیغې، نارې سورې، غوغا، کوکه.

**اله څیک** (alacík) نر.م. هغه ځای، چې واوره یې ویلې شوې وي.

**اله داد** (aladā́d) نر.م. وګ. الا داد.

**اله ګوله** (alagūlá) ښځ.م. ۱) ګډوډي، بې نظمي، ګڼېر؛ ۲) ګڼه ګونه، ازدحام.

**الهنګ** (alháng) نر.م. ویر، غم، ژړا او فریاد.

**الهي** (ilāhí) ۱) د ندا حالت. ای خدایه! ای ښتنه! ؛ ص. نر. دخدای (ج) له خوا.

**الهیات** (Ilahyā́t) نر.ج. هغه علم، چې د خدای (ج) په اړه کې بحث کوي.

**الی** (aláy) اد. د ندا توری، چې د اریانتیا په وخت کې ویل کېږي – الی، دا دې څه وکړه!.

**الۍ** (aláy) ښځ. م. سربانډه، سربانه، چرمینه، هغه پړی چې له څرمنې، وړیو، مزري او کولمو څخه جوړېږي.

**الیاف** (alyā́f) نر.ج. نسج، سپنسي، د پوست او نباتاتو د ډندر سپنسي او تارونه.

**الي ځلي** (alejále) ښځ. ج. هڅه، کوښښ.

**الیش** (alíš) نر.م.ج. وګ. الش.

**الیکین** (alíkyn) نر.م. اریکین، لیکین، لاټین.

**الېيل** (aleyál) مص. مت. ۱) الوېيل، الوېول؛ ۲) کباېول، تورول (لکه د لاندې پسه).

**امارت** (imārát) نر.م. اميري، مشري؛ حکومت، اقتدار.

**اماله** (imā́la) ښځ.م. ترسه، داسې طبي آله ده، چې پخانسدا د کې استعمالېږي.

**امام** (imā́m) نر.م ۱) پېشوا، مذهبي لارښوونکی؛ ۲) د جومات ملا؛ ۳) مخکې، ترمخه.

**امامت** (imāmát) نر.م. ۱) لارښوونه، پېشوايي؛ ۲) لمونځ ورکونه.

**امان** (amā́n) نر.م. پناه، ژغورنه، ساتنه، ايمني.

**امانت** (amānát) نر.م. امين والی، د چا د يو شي يا پيسو سمه ساتنه.

**امانت کاری** (amānatkā́ray) ص. نر.م. امانت گر، امانت کار.

**امانی** (amānáy) ښځ.م. د اعليحضرت امير امان الله خان د دورې سکه.

**اماني** (amā́ni) ص. نب. ۱) تېول، پوره، بشپړ؛ ۲) پټ، خوندي؛ ۳) مزدوري، کچه مزدوري.

**امبا** (amabā́) ښځ.م. د مېږو او وزو اواز.

**امبار** (ambā́r) نر.م. ۱) کوټه، تويې، ډېری، زېرمه، گودام؛ ۲) سره، پارو، کود.

**امبارکښ** (ambārkáṣ̌) ص. نر.م. سره چلوونکی، پارو وړونکی.

**امبالی** (ambāláy) ښځ.م. ۱) ډولۍ، پالکۍ، کجاوه (د فيل)؛ ۲) اوډنه، سرپه سر ايښوونه.

**امبرلوبه** (ambárloba) ښځ.م. يو ډول لوبه ده.

**امبريالوجي** (ambryā́loji) ښځ.م. د جنين پېژندنې علم.

**امبور** (ambū́r) نر.م. انبور، د مېخو او... د نيولو او راکښلو لپاره دوه غاښيزه او سپنيزه آله ده.

**امبولانس** (ambolā́ns) نر.م. د روغتونونو يو ډول مخصوص موټر.

**امپراطور** (amprātū́r) نر.م ۱) امپراتور، د لرغوني روم د سردارانو لقب؛ ۲) نن ورځ ستر او مقتدرو پاچاهانو ته امپراتور وايي.

**امپراطوري** (amprātū́ri) فځ.م. پر هغه هېواد اطلاقېږي چې د مساحې پراخوالی، د وگړو او قدرت زياتوالی، د يوه قوم-قبيلې تسلط پر نورو قومونو.

**امپرياليزم** (amparyā́lizm) نر.م. د سرمايه دارۍ (کاپيتاليزم) د سيستم لوړه او وروستۍ مرحله چې زيار ايستونکي په کې استثمارېږي.

**امپول** (ampól) نر.م. هغه ووړ ښيښيي بوتل، چې اوبه يا دوا په کې وي.

**اُمت** (ū(m)mát) نر.م. ديوه پيغمبر پيروان، د خلکو يوه ډله، جماعت.

**امتحان** (imtihā́n) نر.م. ازموينه، ازماېښت، ازمېښت، تجربه.

**امتحاني** (imtihā́ni) ص. نب. د ازموينې، د ازمېښت، تجربوي، تجربي.

**امتداد** (imtidā́d) نر.م. اوږدوالی، غځېدنه، اوږدېدنه.

**امتناع** (imtināʕ́) ښځ.م. منع کونه، گرځونه.

**امتنان** (imtinā́n) نر.م. منته، خوښي.

**امته** (amtá) ښځ.م. هيله، اميد، آرزو، تمه.

**امتياز** (imtiyā́z) نر.م. ۱) توپير، بېلوالی؛ ۲) ښه والی، لوړوالی؛ ۳) هغه حق يا اجازه چې د دولت له خوا د ورځپانو، مجلو او... ته ورکول کېږي.

**امتيازي** (imtiyā́zi) ص. نب. توپيری، توپيريز.

**امحا** (imhā́) ښځ.م. محوه کونه، له منځه وړنه.

امداد (ımdā́d) نر.م. مرسته، بسپنه، لاس نیوی.

امر (amár) نر.م. ۱) حکم، فرمان، ویل؛ ۲) په گرامر کې د فعل هغه بڼه ده چې د یو کار په اجرا کولو د حکم مانا افاده کوي.

امراض (amrā́z) نر.ج. و.گ. مرض.

امرسه (amrasá) ښځ.م. یو ډول خوږه ده چې له اوړو، غوړیو او شربت څخه جوړېږي.

امړل (amŕál) نر.م. مرل، چاڼول، تاکل، غوره کول.

امرلاندې (amarlāndé) نر.م. مادون، تر لاس لاندې، د امر لاندې.

امرله (amrlá) ښځ.م. انتخابوله، چاڼوله، تاکله.

امزولی (amzólay) نر.م. په عمر کې سره برابر، د یوه عمر، هم عمره، همزولی.

امسا (amsā́) ښځ.م. بېنت، لکړه، د لاس لرگی.

امساک (ımsā́k) نر.م ۱) ممسک توب، سختي، سپیتانه؛ ۲) نیونه، بندونه.

امست (amíst) نر.م. پښه، پېرنه، پېودنه.

امستل(۱) (amıstál) مص. مت. پېیل، پېودل، پېرل، څه شی په سپنسی یا تار پېیل.

امستل(۲) (amustál) مص. مت. بېلول، جلا کول، جدا کول، گوښی کول، له یو بلنه لیرې کول.

امضا (ımzā́) ښځ.م. لاسلیک، دستخط.

امغانه (amğāná) ښځ.م. د ورون د پورتنۍ اخري برخې او تناسلي آلې ترمنځ ځای، مغبني ناحیه.

امغلن (amğalán) ص. نر.م. ۱) اوم، کچه، نیم پوخ، امغدن؛ ۲) بې وخته، مخکې له وخته.

امکان (ımkā́n) نر.م. ۱) د کېدو وړ، کېدونکی؛ ۲) فل. د کوم شي وجود یا عدم چې ضروري نه وي.

امکوری (amkóray) نر.م. د ښېرروونکي ژوي بچی، د داړونکي حیوان کوچنی بچی.

امکی (am(a)káy) ښځ.م. ترور، دپلارخور، عمه.

امل (amál) نر.م. ۱) وجه، کبله، بابته..

املا (ımlá) ښځ.م. ۱) دکول؛ ۲) لیک دود، د کلیمو د لیکلو قواعد.

املاک (amlā́k) نر.م. شتمني، ملکیت، جایداد.

املایي (ımlāyí) ص. نب. د املا، د لیک دود.

املوټ (amlū́ṭ) نر.م. یو ډول لوبه ده.

املي (amalí) ص. نر.م. معتاد، اخته.

املېیل (amléyal) مصن. مت. پټول.

امن (ámn) نر.م ۱) ساتنه، پناه، ۲) سوله، امنیت، کراري، آرامي.

امنا (amanā́) ښځ.م. ۱) منل، تسلیم، قبلونه، تایېدونه، ۲) اد. د تعجب او عجز ښکاره کولو په وخت کې ویل کېږي- امنا ده درته.

امنته (amanṭá) ښځ.م. گردله، تر برف، هغه واوره چې باران ورسره وي.

امنکوټ (amankóṭ) نر.م. نیمره، امنځی.

امنیت (amnıyát) نر.م. امنه، سوله، آرامي.

امنیتي (amnıyatí) ص. نب. سوله ییز، دارامي، د کراري، د امنیت اړوند.

امنیه (amnıyá) ښځ.م. هغه قوه (پولیس، ژاندارم) چې د دولت له خوا د ښاري امن د ساتنې دنده لري.

اموخت (am(ū́,o)xt) نر.م. ج. ۱) روږد، خوی نیونه، عادت نیونه (له چا سره)؛ ۲) مینه، انس.

اموخته (amū(o)xtá) ص. نب. روږدي، عادت شوی، معتاد، خوی نیولی، بلد، روږدي.

امه (amá) ښځ.م. هیله، اسره، امید، تمه، آرزو.

امي (amí) ص. نب. نالوستی، بې تعلیمه.

امیانی (amyan áy) ښځ.م. میانی، همیانی، کڅی، د پیسو کڅوړه.

**امیب** (amíb) نر.م. ذره بیني ژوی دی چې د انسان په کولمو کې تولیدیږي او د اسهال سبب کیږي.

**امید** (umáyd) نر.م. و.گ. امه.

**امیدواره** (umaydwārá) ښځ. م. ۱) امیدواره، حامله ښځه؛ ۲) ص. نب. م. ج. هیله من، هیله منه، په تمه، په امید.

**امیدواري** (umaydwārí) ښځ. م. هیله، امید، اسره، توقع.

**امیده** (amidá) نر.م. په نامه سره شریک، دوه کسه چې نومونه یې یو شی وي، په یوه نوم.

**امیر** (amír) ص. نر. م ۱) مشر؛ ۲) مالدار، شتمن ۳) حکم چلوونکی، سردار، مالک.

**امیرالبحر** (amirūlbahár) نر.م. د بحري چارو مشر، دبحري نظامي چارو متصدي.

**امیرالمؤمنین** (amirūlmomunín) نر.م. د مؤمنانو امیر، د راشده خلفاوو لقب.

**امیرانه** (amirāná) ق. ۱) د امیر په څېر؛ ۲) له امیر سره ور، څه چې له امیر سره ښایي.

**امیربازي** (amirbāzí) ښځ. م. د هلکانو یو ډول لوبه ده.

**امیري** (amirí) ښځ. م. مشري، پاسوالي، واکمني.

**امېږ** (améğ) ص. نر.م. گډ، گډوډ، خچن، ناولی، ککړ.

**امېل** (amél) نر.م. هار، اوږده غاړکې، اوږده اوږې، په تار پېيل شوي گلان.

**امین** (amín) ص. نر. م. ۱) رېښتینی، سپېڅلی، صادق، امانت ساتونکی؛ ۲) نر.م. ۱) مننه، قبلونه؛ ۲) پرېکړه.

**ان** (ān) اد. ۱) تر، پورې، حتی، بېخي؛ ۲) ور. په پښتو کې د نرینه نومونو د جمعې وروستاړی دی؛ لکه: اوبن – اوبنان.

**انا** (anā́) ښځ. م. ۱) نیا، د پلار مور، د مور مور؛ ۲) زوړ، بوډۍ ښځې ته د درناوي په دود انا وایي.

**اناټومي** (anāṭū́mi) ښځ. م. د بدن د غړو د تشریح پوهنه.

**اناټېټی** (anāṭetáy) ښځ. م. ج. ړوند چرگ، ړنده خره؛ یو ډول لوبه ده.

**انار دانه** (anārdāná) ښځ. م. ۱) هغه دانه، چې د انار په منځ کې وي؛ ۲) د انار وچې شوې دانې، ترشوي.

**انار رنگی** (anārrangáy) ص. نر. م. اناري، سور، ښکلی، ښایسته.

**انارشي** (anārší) ص. ښځ. م. گډوډي، بې نظمي، هرج ومرج، لگه درگه.

**انار گوسی** (anārgū́say) نر.م. د انار ونه یا دانه.

**اناگی** (anāgáy) ښځ. م. ج. ۱) د کوچنیانو یو ډول لوبه ده؛ ۲) یو ډول خړ رنگه چینجی؛ ۳) د انا د کلیمې تصغیري شکل دی.

**انانس** (anā́wns) خبرونه، اعلانونه، خپرونه.

**انانگه** (anāngá) ښځ. م. ۱) بارخو، غمبوري، اننگی رخسار؛ ۲) نانگه، یو راز غرنی بوټی دی، چې میوه یې الوبالو ته ورته ده.

**اناوالی** (anāwā́lay) نر.م. ۱) اناتوب؛ ۲) ځان د کور انا کول (مشره مشره کول).

**انايي** (anāyí) ص. نب. بې عقله، بېحيا، لډر.

**انبان** (anbā́n) نر.م. لوړ ځيږ، اوږد.

**انبساط** (inbisā́t) نر.م. ارتوالی، خلاصوالی، پراخوالی، توله ارخیزه غځېدنه.

**انبول** (anból) نر.م. وير، ماتم؛ ساندې، ژړا.

**انتان** (antā́n) نر.م. طب. هغه تپ چې پارسوب او زوه (نو) ولري.

**انتباه** (intıbā́h) ښځ. م. ۱) خبرېدنه، پوهېدنه؛ ۲) پند اخیستنه، عبرت اخیستل.

**انتحار** (intıhā́r) نر. م. ځان وژنه.

**انتحال** (intıhā́l) نر. م. ادبي غلا، پردئ شعر په خپل نامه تېرول.

**انتخاب** (intıxā́b) نر. م. ټاکنه، خوښونه، غوره کونه، چاڼونه.

**انتخابات** (intıxābā́t) ج. نر ۱) د انتخاب جمع؛ ۲) رایې ورکونه، د رایو اخیستنه.

**انتخاباتي** (intıxābā́ti) ص. نب. د انتخاباتو، په انتخاباتو مربوط – انتخاباتي مبارزه او...

**انتخابول** (intıxābawál) مص. مت. ټاکل، خوښول، غوره کول.

**انتخابي** (intıxā́bi) ص. نب. ۱) ټاکل شوی، غوره شوی؛ ۲) غوره، ښه.

**انتخابېدل** (intıxābedál) مص. ل. ټاکل کېدل، غوره کېدل.

**انتر** (antár) نر. م. انترمنتر، د مداریانو مخصوص الفاظ دي.

**انترا** (antrā́) ښځ. م. ج. ۱) شپه، تیپ کړی او بند؛ ۲) مو. انتره، له کسر نه وروسته برخه.

**انتروپالوجي** (antropālogī) ښځ. م. بشر پېژندنه، وګړپېژندنه.

**انتروشی** (antrósay) نر. م. پرنجی، پرنچکی، پرچل، انتروسی، انتوسی، پرشی.

**انتساب** (intısā́b) نر. م ۱) اړیکه، رابطه، خپلوي؛ ۲) نسب، شجره، ۳) سریزه؛ ٤) په ریاضي کې د نسبت ټاکل.

**انتشار** (intıšā́r) نر. م. و ګ. خپرونه.

**انتصاب** (intısā́b) نر. م. ټاکنه، منصوبونه، پر کوم کار باندې د چا درونه، د انتخاب ضد.

**انتصابي** (intısā́bi) ص. نب. ټاکل شوی، درول شوی، منصوب شوی.

**انتصار** (intısā́r) نر. م. بري، کامیابي، بري تر لاسه کول، بریالیتوب ته رسېدنه.

**انتظار** (intızā́r) نر. م ۱) لاره کتل، سترګې غړول؛ ۲) هیله، امید، توقع.

**انتظار ایستل** (intızārıstál) مص. ل. لاره کتل، سترګې غړول، لاره څارل.

**انتظار خونه** (intızārxuná) ښځ. م. د انتظار ایستلو کوټه، د ملاقات لپاره د انتظار کوټه.

**انتظام** (intızā́m) نر. م. ۱) نظم، سمون، ترتیب، اوډنه؛ ۲) په تارکې د مرغلرو پېیودنه.

**انتفاع** (intıfā́ʕ) ښځ. م. ګټه، سود، فایده.

**انتفاعي** (intıfā́ʕi) ص. ښځ. م. ګټه کوونکی، نفعه کوونکی، د ګټې پر اساس.

**انتقاد** (intıqā́d) نر. م. ۱) کره کتنه؛ ۲) ګوته نیونه؛ ۳) د کوم شعر د عیب ښکاره کونه.

**انتقال** (intıqā́l) نر. م. ۱) لېږدېدنه، کډه کونه؛ ۲) لېږدونه، ورنه؛ ۳) اندلېږدونه.

**انتقالول** (intıqālawál) مص. مت. ۱) لېږدول، کوچول؛ ۲) وړل.

**انتقالي** (intıqā́li) ص. نب. خوځېدونکی او لېږدېدونکی.

**انتقام** (intıqā́m) نر. م. غچ، کسات، بدل، بدله.

**انتها** (intıhā́) ښځ. م. پای، آخر، اخیر، وروسته.

**انتهايي** (intıhā́yi) ص. نب. وروستی، آخري.

**انټر** (anṭár) نر. م. چابک، تېز، اوچت، متی.

**انټن** (anṭán) نر. م. د راډیو او تلویزیون د الکترو مګنټیک څپو د پیاوړتیا لپاره سیم یا سیخ.

**انټوسی** (anṭósay) نر. م. ترنجی، پرنجی، ترنچی.

**انټومولوجي** (anṭomóloji) ښځ. م. د ژولوجۍ هغه څانګه چې د حشراتو څېړنه کوي.

**انټي بيوټيک** ( əntibyóṭik ) يو لړ داروګان دي چې د باکترياوو نه د راوړلاړو شويو ناروغيو د علاج لپاره استعماليږي.

**انټيک** ( anṭík ) نر.م. ج. زوړ، تاريخي، لرغونی، پخوانی.

**انجام** ( anjā́m ) نر.م. ج. ۱) پای، آخر؛ ۲) بشپړ، اجرا، پوره، ترسره؛ ۳) نتيجه.

**انجروت** ( anjarū́t ) نر.م.ج. کنډ، زرکنډ، کنډوره، کنډوری، هغه سپينه سريښناکه ماده ده چې له ونې څخه راوځي.

**انجينري** ( ənjinarí ) ښځ.م. ۱) د ماشينونو د طرح کولو فن؛ ۲) هغه پوهنه، چې د ځمکې له غير عضوي موادو، قدرت او انرژۍ له منابعو، فزيکي قواوو او ... سره سروکار لري.

**انجړ** ( anjáṛ ) نر.م. سرورکې ماشوره، د سپينسيو هغه کلاوه، چې سر يې ورک او جړه وي.

**انجړبنجړ** ( anjáṛ-banjáṛ ) ص. نر.م. ج. ګډوډ، خراب تراب، پريشان.

**انجکه** ( anjaká ) ښځ. م. (ج. انجکې) ۱) سوړ اسويلی، سړه ساه،،

**انجماد** ( ənjimā́d ) نر.م. کنګل، يخی؛ افسردګي.

**انجمن** ( anjūmán ) نر.م. ټولنه، غونډه، ټولی، موسسه.

**انجن** ( ənján ) نر.م. ميخانيکي اوزار او اسباب، ماشين باب.

**انجنير** ( ənjiniár ) نر.م (ج. انجنيران) د انجنيري متخصص، و.ګ. انجنيري.

**انځر ګل** ( ənʒargwál ) نر.م. ۱) د انځر د ونې ګل؛ ۲) هغه څوک چې د هر لړ ليدل کېږي.

**انځکی** ( anʒakáy ) نر.م. (ج. انځکی) د ناروغ فرياد، زګېروی، زوېرګی.

**انځور** ( anʒū́r ) نر.م. رسم، کښيده، نقش، نبهان، نمونه، علامه.

**انځوراند** ( anʒūrā́nd ) انځورګر، نقاش.

**انځور ښېره** ( anʒorcéra ) کښيده، تصوير.

**انځورګر** ( anʒūrgár ) نر.م. (ښځ. انځورګره) نقاش، نقشګر، کښېډه کوونکی.

**انځورګري** ( anʒūrgárí ) کښيده کاري، نګارګري.

**انځورليک** ( anʒūrlík ) جدول، ګراف دياګرام.

**انځوروال** ( anʒūrwā́l ) تصوير ګرا.

**انځورول** ( anʒūrawál مص. مت. انځور جوړول، نقش کول، کښېډه کول.

**انځوريز** ( anʒūríz ) نګاره يي، کښيده يي.

**انڅی** ( ənċáy ) ښځ. م. ج. سنی، هغه وړين تارونه چې پړي او کمپلې ترې جوړېږي.

**انحراف** ( ənhirā́f ) نر.م. ۱) کږېدنه، کوږوالی؛ ۲) اوښتنه، ګرځېدنه؛ ۳) لاره بدلونه.

**انحرافي** ( ənhirā́fi ) ص. نب. ۱) اوښتونکی، اړوونکی؛ ۲) کږېدونکی، بدلېدونکی.

**انحصار** ( ənhisā́r ) نر.م ۱) محدوديت، په تنګسه کې راتلل؛ ۲) د کوم کسب، صنعت، توليد او خرڅلاو کنټرول د يوه «نماينده» يا واحد شرکت، دولت، يا څو شرکتونو په وسيله.

**انحصارات** ( ən hi sārā́t ) نر.ج. د انحصار جمع، هغه اداره او تشکيل، چې په انحصار پورې د اړوندو چارو څارنه کوي.

**انحطاط** ( ənhitā́t ) نر.م. ۱) لوېدنه، راټيټېدنه؛ ۲) رکود، تروټه؛ ۳) ګډوډي، بې نظمي؛ ٤) ړنګېدنه، له منځه تلنه، تجزيه.

**انحلال** ( ənhilā́l ) نر.م. ۱) حل کېدنه، له منځه تلنه، زوال؛ ۲) ک. د کوم شي تجزيه او حلېدل په بل شي کې.

**اند** (and) نر.م. ۱) اندېښنه، فکر، خيال، ګومان؛ ۲) د وخت يوه اندازه، د ژوند يوه دوره چې پنځو سوو کالو ته ورسېږي.

**انداخت** (andā́xt) نر.م. ۱) اور، دله ييزې دزې؛ ۲) فز. هغه مبحث چې د نښې د ويشتلو اندازه او واټن ټاکي.

**اندازه** (andāzá) ښځ.م. ۱) کچه، پيمانه، مېچ، تول، ناپ، ۲) قياس، حد، خيال، ګومان.

**اندازه کول** (andāzakawə́l) مص.مت. ۱) تلل، ميچول، ناپول؛ ۲) قياسول.

**اندام** (andā́m) نر.م. دبدن يو غړی يا برخه.

**اندامور** (andāmawə́r) ص.نر.م.ج. قوي، پند، شلند، هغه څوک چې قوي اندام او غړي لري.

**اند پوهه** (andpohá) ايډيالوجي، ايډيولوژي.

**اند پوهيز** (andpohíz) ايډيالوجيکي، هغه څه چې پر ايډيالوژۍ اړه لري.

**اندراج** (indrā́j) نرم.ج. ۱) ليکنه، ثبتونه، درجونه ۲) هغه کتاب، چې نومونه په کې ليکل کېږي.

**اندرپايه** (anarpā́ya) ښځ.م.و ګ. زينه.

**اندرتل** (andartə́l) په اومه تارګنډل، خام کوک ورکول، مجازاً پټول.

**اندرتي** (andárti) ښځ.م.ج. پټي، ترلې، بندې.

**اندرغپ** (andarğā́p) ص.نر.م. ورک، بې درکه، پټ، ناڅرګند.

**اندرکاغی** (andarkāğóy) ښځ.م. د کوچنيانو يوه لوبه ده.

**اندرکه** (andárka) ښځ.م. (ج. اندرکې) ګنجی، نيم تنه جاکټ، ګندی، سدری.

**اندرور** (indrór) ښځ.م. د مهره خور، نندرور.

**اندرول** (andrawə́l) نر.مت. خام کوک ورکول، اندرتل، لوادره، خام ټک.

**اندرېيل** (andreyā́l) مص.مت. مينځل، پرېولل، کنګالول، وينځل، اوبه پرې تېرول.

**اندړ** (andə́ṛ) نر.م.ج. ۱) يو ډول وابښه؛ ۲) ژېړ رنګه مرغی دی؛ ۳) د يو پښتني ټبر نوم دی.

**اندغړن** (andğaṛán) نر.م. هرهغه ښاروی، چې پوره خصي شوی نه وي، بورد ک.

**اندل** (andál) نر.م. فکر کول، تفکر.

**اندليک** (andlík) ايډياګرام، چيني ليک.

**اندنه** (andána) ښځ.م. جاجنه، تفکر.

**اندواره** (andwā́rá) ښځ.م ۱) اندازه، مېچ؛ ۲) قياس، اټکل.

**انددود** (anddód) اند توګه، د فکر طرز، طرز تفکر.

**اندور** (andwár) نر.م. د فکر ور، قابل تفکر.

**اندوکندو** (andūkandū́) ص.نب. تند، پړسېدلی، ددېد، ادو بدو.

**اندولي** (andúli) ښځ.م.ج. ۱) د يوه نر ژوي د مستۍ هغه حالت چې د ښځينه جنس سره د يو ځای کېدو په وخت کې ورته پيدا کېږي؛ ۲) اينډ غر، وندغری.

**اندوواند** (anduwā́nd) نر.م. فکر و خيال.

**انده** (andá) ښځ.م. مفکوره، تفکر.

**انديال** (andyā́l) اندیالی، اندي، متفکر، د فکر څښتن.

**اندېر** (andér) نر.م. ۱) تياره؛ ۲) ظلم، تېری؛ ۲) غم، کړاو؛ ٤) بدبختي؛ ٥) ګراني.

**اندېری** (anderáy) ښځ.م.ج. ګنه ګونه.

**انديز** (andíz) مفکوروي، فکري.

**اندېښمن** (andeṣmán) ص.نر.م.ج. غمجن، غمځپلی، غم لرلی.

**اندېښنه** (andeṣná) ښځ.م. (ج. اندېښنې) فکر، غم، نول، تشويش، وېره، خطره.

**انډ** (anḍ) نر.م. ۱) هند، بلوری، ټیټ؛ ۲) مردکی.

**انډخور** (anḍxór) نر.م. ۱) خوړلن، ایره خول، په مره اوړ پوخ شوی؛ ۲) داورشرګندېدل.

**انډر** (anḍə́r) ص.نر.م. ۱) مست شاروي چې خصي شوي نه وي، خوټو، مینده، انده؛ ۲) مست او شهوتي سړی.

**انډرکی** (anḍárkay) نر.م. اروړمی، اروړمی.

**انډره** (anḍára) ښځ.م. (ج. انډرې) لوبه کوله.

**انډس** (anḍós) نر.م. اندوس، وګ. اباسین.

**انډک** (anḍák) نر.م. ۱) اړخ؛ ۲) کوناتی؛ ۳) ناز او نخره، کنج، مکیز، نخرې؛ ٤) غرور.

**انډه کان** (anḍakán) نر.م. د ژمي د دوو شپلو ترمنځ وخت چې سخت باد لري او ونې شاربې.

**انډک سونډک** (anḍá ksonḍák) نر.م. سونډک مونډک، د حمل باد، هغه سیلۍ چې د ژمي په پای کې الوځي او ونې ډډوي.

**انډل** (anḍ(a,á)l) نر.م. ۱) اینډل، هنډل، هغه فلزي میله ده، چې یو سر یې د موټر په موټورکې او بل سر یې په لاسونو سره تاوېږي؛ ۲) د بایسکل د مخنۍ خوا.

**انډو** (anḍú) ښځ.م. د پمبې، پخنتې، کربوسکې نارسېدلې غوزه.

**انډوخر** (anḍoxár) نر.م. ۱) لټپیر، خرمستې؛ ۲) چیغې، سورې، شور، ځوږ.

**انډول**[1] (anḍól) نر.م. اینډول، اونګ، اوکلې، بغرې.

**انډول**[2] (anḍwál) نر.م. ۱) تول، سمون، برابری، برابر؛ ۲) په شک کې لوېدل.

**انډولتیا** (anḍwaltyá) ښځ.م. توله، برابری.

**انډولۍ** (anḍolúy) ښځ.م.ج. وګ. ډولۍ.

**انډه** (anḍú) ښځ.م. (ج. انډې) لوبه، لاس سره اچول (ساتېرې) شیطانې (شوخې).

**انډۍ** (anḍáy) ښځ.م. ۱) بوروا، زېمنه، زومنه؛ ۲) د بوروا پخولو لوښې یا کټوه.

**انډۍ** (anḍáy) نر.م. ۱) غونډی، د اوبو یا خره د باریوه خوا؛ ۲) څنګ، ډډه، اړخ.

**انډیاري** (anḍyári) نر.م.ج. د پنډۍ غوښه.

**انډېری** (anḍéray) نر.م. ۱) پوزی، له میزرو څخه جوړ شوی فرش، چې غله په کې پدې، پریری.

**انډېرۍ** (anḍeráy) ښځ.م.ج. ګنه ګونه، ګڼ خلک، غونډه.

**انډۍ انډۍ** (anḍáyanḍáy) ص.نر. توتې توتې، اندام اندام؛ ۲) د برزیات ستومانه کېدل.

**انډیکاتور** (anḍikāṭór) نر.م. ۱) د واردې او صادرې کتاب؛ ۲) نماینده، شاخص، اندازه، مقیاس؛ ۳) فشار سنج.

**انډیوال** (anḍiwā́l) نر.م. ملګری، مل، شریک، د خوراک څښاک ملګری.

**انرژي** (in(i,á)r ži) ښځ.م. ۱) سیک، توان، قوت؛ ۲) د کارکولو استعداد (ظرفیت)؛ ۳) د حرکت د مقیاس واحد.

**انرکه** (anarká) ښځ.م. مانۍ، قصر.

**انزال** (inzā́l) نر.م. ۱) کښته راتلنه، کښته راورنه؛ ۲) مني خارجېدنه.

**انزکی** (anzákay) نر.م. شوخ هلک.

**انزوا** (inziwā́) ښځ.م. ۱) ګوښه والی، یوازېوالی، یوازیتوب؛ ۲) شېله کېدل.

**انس** (ins) نر.م. انسان، بشر، بنیادم.

**انس** (uns) نر.م. خوی نیول، عادت کول، علاقه.

**انسان** (insā́n) نر.م. ۱) سړی، بنیادم، بشر.

**انسان پرست** (insānparást) ص.نر.م. څوک چې له انسان سره مینه لري، انسان پال، هیومنیست.

**انسانيت** (insāniyát) نر.م. سړيتوب، ښه خوی، ښه عادت، ښه چلند.

**انسايکلوپيډيا** (insāyklopiḍiyā́) ښځ.م. دايرة المعارف، د عمومي معلوماتو مجموعه.

**انسجام** (insijā́m) نر.م. برابری، نظم، سمون.

**انسداد** (insidā́d) نر.م. ج. بندېدنه، تړل کېدنه، بندېز، ممنوعيت.

**انسلاک** (insilā́k) نر.م. په مزي پېينه، د خلکو په ډله يا جماعت ورګډېدل.

**انشا** (inšā́) ښځ.م ۱) پيل کول، پيدا کول (خلقول) ۲) ليک، عبارت، ليکنه، مضمون؛ ٤) په لغت کي ايجاد، نوي شي او اختراع ته وايي.

**انشعاب** (inšisā́b) نر.م. څانګه څانګه کېدل، بېلېدل، ډلي ډلي کېدل.

**انشقاق** (inšiqā́q) نر.م. ماتېدل، سوري کېدل، په برخو جلا جلا کېدل، تيت او پرک کېدل.

**انصاف** (insā́f) نر.م. نياو، عدل، برابری، عدالت

**انضباط** (inzibā́t) نر.م. اوشين، پېودنه، نظم او ترتيب، دسپلين.

**انطباق** (intibā́q) نر.م. برابروالی، سمون.

**انعام** (insā́m) نر.م. بخشش ورکول، تحفه، ورکړه.

**انعدام** (insidā́m) نر.م. پناه کېدنه، ورکېدنه، مړ کېدنه، له منځه تلنه، پوپنا کېدنه.

**انعکاس** (insikā́s) نر.م. اوښتنه، نسکورېدنه، پرمخ کېدنه، اپوټه کېدنه.

**انغسه** (angā́sa) ښځ.م. ۱) کوچنی خوږه ډوډی، کولچه؛ ۲) رونغخی، ګونغاخی، سراغه

**انفاذ** (infā́z) نر.م. روانونه، بهونه، جاري کونه، چلونه، د حکم او فرمان اجرا کول.

**انفجار** (infijā́r) نر.م. ۱) چاودنه، چاودېدنه؛ ۲) الوتنه، بهېدنه.

**انفرادي** (infirā́di) ص.نب. ګوښی، يوازي، ځانله، فردي، ځانته، ځانله ځانله.

**انفصال** (infisā́l) نر.م. ۱) بېلتون، شلېدنه، بېلېدنه؛ ۲) فيصله، د خبري خلاصی.

**انفعال** (infisā́l) نر.م. ۱) شرمېدنه، خجلت، ملامتيا، خپېدنه؛ ۲) د کوم شي اغېز منل.

**انفکاک** (infikā́k) نر.م. جلا کېدنه، بېلېدنه، جدايي، بېلونه، ايسته کېدنه، شړنه.

**انفلاسيون** (infilāsyū́n) نر.م. پولي تورم، تورم، د قيمت په عمومي سطح کي اوچتوالی.

**انفلاق** (infilā́q) نر.م. چاودنه.

**انفلاقي** (infilā́qi) ص. نب. چاودېدونکی، د چاودني وړ.

**انفلوينزا** (infloyanzā́) ښځ. م. والګی، بادوونی، ګريپ، زکام.

**انقباض** (inqibā́z) نر.م. راټولېدنه، غنجېدنه، کلکېدنه، تينګېدنه.

**انقسام** (inqisā́m) نر.م. وېش، وېشنه، برخي برخي کونه، ونډي ونډي، تقسيمونه.

**انقلاب** (inqilā́b) نر.م. ۱) اوښتنه، اوړېدنه، بدلون، بدلېدنه، اوښتون؛ ۲) بنيادي بدلون.

**انقلابي** (inqilā́bi) ص. م. انقلاب غوښتونکی، انقلاب راوړونکی.

**انک** (anák) نر.م. هنک، ريشخند، ملنډي، نخول، بېشاړي، وشتي، ټوکي، خندا.

**انک وهل** (anakwahál) مص. مت. هنک وهل، په چا پوري ټوکي کول، د چا رشخندول.

**انکار** (inkā́r) نر.م. خبره نه منل، ځان غړول.

**انکسار** (inkisā́r) نر.م. ماتېدل، عاجزي، ماتوالی.

**انکشاف** (inkišā́f) نر.م. ۱) پرمختيا، پرمختګ ۲) پرانيستل کېدل، ښرګندېدل.

**انکشافي** (inkišāfí) ص. نب. ۱) پرمخنیایي، پرمختګي؛ ۲) د پلټنې، د جاسوسی.

**انکو** (anakó) ښځ. م. نیا، انا، د پلار یا د مور مور.

**انکور** (ankór) نر.م. ګونګوسه، انګازه، راز.

**انکی** (inkáy) نر.م. و ګ. اینکي.

**انګا** (angā́) ښځ. م. ۱) د نوي پیدا شوي ماشوم ژړا؛ ۲) د خره آواز.

**انګار** (angā́r) نر.م. سرې سکروټې، د اور سکروټې، سور اور

**انګازه** (angāzá) ښځ.م. (ج. انګازې) ۱) آوازه؛ ۲) د غږ انعکاس.

**انګبین** (angabín) نر.ج. ګبین شات، عسل.

**انګړ** (angáṛ) نر.م. ۱) غولی، حویلی؛ ۲) د پټي د ساتنې اغزي، د غنو او اغزیو ویره (دیوال).

**انګړاتي** (angṛā́tí) ښځ.م. پټپټاني، پوټپوټانکه، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**انګړی** (angaṛáy) ښځ.م ۱) ناکه، د اوبو د ویشلو بند، د اوبو د ویشلو دانه؛ ۲) یو ډول ونه ده چې سرې سرې دانې کوي، ۳) أجزه، دېره.

**انګړی** (angṛáy) نر.م. انګوری، ننګوری، ورکوټی انار، انار ګوری انارګوټی.

**انګل** (angál) نر.م. ۱) شور، ځوږ؛ ۲) انګولا، چیغې سورې؛ ۳) لانجه، کشاله کړکېچ.

**انګوټ** (angū́ṭ) نر.م. ابګوټ، د اوبو جهاز، هغه بېړۍ چې په حرارت چلېږي.

**انګوری** (anguṛáy) نر.م. (ج. انګورې) ورکوټی انار، ننګوری، تریو انار.

**انګوري بنګوري** (angoríbangorí) نر.م. د هلکانو یوه لوبه ده.

**انګول** (angū́l) نر. م. (ج. انګولې) لټون، تلاش، ډونډ، غوښتنه، سوسکارنه.

**انګولا** (۱) (angolā́) ښځ. م. ژړا، ویر، فریاد.

**انګولا** (۲) (angūlā́) ښځ. م. ونګېلای، د سپي سپېره آواز، د سپي کوکې، دولی.

**انګولل** (angūlál) مص. ل. ۱) ونګېدل، کوکې کول؛ ۲) هېپه، بې صبري، ډېره اشتها، خورو ته زبېښه لېوالتیا.

**انګ وهل** (angwáhal) مص. ل. نږېدل، انېدل.

**انګه** (۱) (angá) ښځ. م (ج. انګې) ۱) اوازه، ډنډوره، ډونډوره، نغار؛ ۲) دانارو دانه، دانګوري ونه.

**انګه** (۲) (ingá) ښځ. م. تونګور، هغه ښځه چې د واده په ورځ د ناوې سره د زوم کورته ځي.

**انګهار** (ingahā́r) نر.م. اینکی، د ناوې سلګی، د ناوې ژړا.

**انګی** (angáy) نر.م. ۱) و ګ. اینکی؛ ۲) بارخو، اننګی، د مخ وتی؛ ۲) غمبوری.

**انګی** (angáy) ښځ. م. ۱) کړنګار، په غره کې د غږ انعکاس؛ ۲) د هلکانو یوه لوبه ده.

**انګیا** (angiyā́) ښځ. م. بنیان، بنین، زیرپېراني.

**انګیالواک** (angiyālwā́k) په دې مانا چې ژبه له انګینومو رغېدلې ده.

**انګېرل** (angerál) مص. ل. ګڼل، ګومان کول، تصور کول، فکرکول، تلقي کول.

**انګېروال** (angerwā́l) ص. نر.م. ایدیالېست، خیال پرست.

**انګېرواله** (angerwālá) ایدیالیزم، خیالپلوي.

**انګېره** (angerá) ښځ. م. ۱) و ګ. انګېرل؛ ۲) کرکه، نفرت؛ ۳) بېره، ډار.

**انګېریال** (angeryā́l) ص.نر.م. خیالګرا، انګېروال

**انګینوم** (angenū́m) نر.م. صوت نوم، طبیعي غږ.

**انګینومپوهنه** (angenūmpōhána) ښځ.م. هغه ژبنی څانګه، چې پر انګینومونو غږېږي.

**انگیویی** (angiwayáy) نر.م. صوتي کلیمه.
**انند** (anánd) نر.م. ۱) خوښي، ښه‌غمي؛ ۲) شکر.
**اننګ[۱]** (anáng) نر.م. ۱) انار؛ ۲) باړخو، اننګی، د مخ وتی، غمبوري، رخسار.
**اننګ[۲]** (anáng) نر.م. ۱) د لاس ددوو ګوتو ترمنځ تش ځای؛ ۲) دېره لږه فاصله.
**اننګی** (anangáy) نر.م. باړخو، د مخ وتی.
**انو** (anū́) نر.م. خوږ ولنی، کوپه، بادیان.
**انواع** (anwā́ʿ) نر.ج. (د نوع جمع) ډول ډول، رنګ په‌رنګ، قسمونه.
**انوبله** (anoblá) ص. نب. بې زینه آس، شاتوري آس.
**انه** (aná) ښځ. م. هندي او پاکستانی پیسه ده، چې د یوې کلدارې ۱/۱۶ برخه کېږي.
**انی** (anáy) ښځ. م. ۱) نیا، انا؛ ۲) مشره ښځه.
**انیاب** (anyā́b) نر.م. ج. نېښونه، داړې، د انسان په‌خوله کې مخني څلور غاښونه.
**انیس** (anís) ص. نر.م ۱) انس نیوونکی، همراز؛ ۲) د افغانستان د یوې ورځپاڼې نوم دی چې په ۱۳۰۶ کال کې تاسیس شوې ده.
**اڼ** (aṇ) نر.م. کمزوري، کمزورتیا، ډنګرتوب.
**اڼغنج** (aṇgā́nj) نر.م. د پنځوس لوبه، توپ بازي.
**اڼکې بڼکې** (aṇkebaṇké) ښځ. م. اکوبکو، د کوچنیانو یوه لوبه ده.
**اڼل** (aṇə́l) مص. مت. اوره کول، میده کول، دوره کول، دونه کول، ترمېچن ایستل.
**اڼول** (aṇawə́l) مص. مت: ۱) غوڼډول، ټولول؛ ۲) چڼول، خوښول، بېلول؛ ۳) کمزوری کول.
**اڼه[۱]** (aṇá) ښځ. م. (ج. اڼې) ځار، جار، قربان.
**اڼه[۲]** (aṇá) ص. نب. ۱) غوربدلی؛ ۲) ستومانه؛ ۳) خوار، ډنګر، کمزوری.

**اڼیل** (aṇeyə́l) مص. مت. مېچنول، مېچن کول، دلول، میده کول.
**او[۱]** (áw) اد. ۱) د عطف او ربط توری؛ ۲) د غواو د شپولو آواز؛ ۳) نر.م. هو، بلې، آ.
**او[۲]** (ó) نر.م. د ندا توری.
**اوار** (awā́r) ص. نر.م. ج. ۱) غوړېدلی، خپور، هوار، ویر؛ ۲) نر.م. لوټ، شوکه، چور.
**اوارول** (awārawə́l) مص. مت ۱) برابرول، ویرول؛ ۲) رنګول؛ ۳) لوټول؛ ٤) پرېکړه کول.
**اواروونکی** (awarawū́nkáy) فا. نر.م. ۱) خپروونکی؛ ۲) سوله راوستونکی.
**اواره** (awārá) ص. ښځ. م. ۱) یوبرابر، مسطح؛ ۲) غوړېدلې؛ ۳) روغه، جوړه؛ ٤) ص. نب. بې کوره، سرګردان، بې لارې، در په در.
**اواره اواري** (awārāáwā́ri) ښځ. م. ۱) یوشان والی، برابروالی؛ ۲) خیرخیریت، فیصله شوې.
**اوارېدل** (awāredə́l) مص. ل. ۱) غوړېدل، یو راز کېدل؛ ۲) سمېدل، فیصله کېدل.
**اواز** (awā́z) نر.م. (ج. اوازونه) غږ، ناره.
**اوازپوهه** (awāzpohá) ښځ.م. فونیم پوهنه، فونیم پېژندنه.
**اوازشننه** (awāzšnána) ښځ.م. اواز پوهنیزه، شننه (تحلیل) فونیمیکي تجزیه.
**اواز کول** (awāzkawə́l) مص. مت. غږ کول، رابلل.
**اوازه** (awāzá) ښځ. م. (ج. اوازې) ګونګوسه، انګازه، ګونګوسی.
**اوامر** (awāmír) د امر جمع. و ګ. امر.
**اواګیر** (awāgír) ص. نر.ج. ۱) بې پروا، بې اعتنا؛ ۲) هوا داره ځای؛ ۳) کبرجن، مغرور؛ ٤) زړه جګېدل، زړه توربېدل.

اوان (awā́n, hawā́n) نر.م. يو ډول توپ دی چې دغره شاته د هدف ویشتلو ورتیا لري.
اوب (ób) نر.م. ۱) مینه، محبت؛ ۲) موقتي مینه، عارضي حب.
اوباز (awbā́z) نر.م. (ج. اوبازان) لامبوزن، لامبو وهونکی.
اوبازي (awbā́zi) ښځ.م. (ج. اوبازۍ) لامبو، لامبو وهنه.
اوب اس (obás) نر.م. د اوبو اس، آبي اس.
اوباش (awbā́š) ص. نر. ۱) بې لارې سړی، اواره، لوچک، پست؛ ۲) بدچلن، بدخرڅه.
اوبال (obā́l) نر.م. ۱) وبال، گناه، بدکار، بدعمل؛ ۲) آزار، ازار.
اوب ایشی (obišáy) نر.م. اوبه ایشوونکی، ابکرمې.
اوببخره (obbaxrá) ښځ.م. د اوبو برخه، حقابه.
اوبپوهنه (obpūhána) ښځ.م. د اوبو علم.
اوبتل (obtál) نر.م. اوبډوب، ډوب ماکو، تحت البحری.
اوبخوڅه (obxūcá) ښځ.م. په وچه کې نښوتې اوبه، ابنا.
اوبجن (objā́n) ص. نر.م. اوبلن، اوبڼ، اوبزن.
اوبجه (objá) ښځ.م. (ج. اوبجې) اوبزه، وینه، کویه، یو ډول وروکی چینجی دی، چې ورین او وربښمین توکران خوري.
وبچي (občí) نر.م. وسله وال، په وسله سمبال.
اوبدانځی (obdānjáy) نر.م. درختونو کارخونه، د اوبدنې کارخونه.
اوبدانه (obdāná) ښځ.م. ماشیني اوبدنه.
اوبدل (obdál) مص. مت. اوډل، وودل، وبډل، وودل، جوړول.

اوبرسونه (obrasawána) ښځ.م. د اوبو رسونه، آبرسانې.
اوبړن (obṛán) نر.م. ج. و گ. اوبجن.
اوبړی (obṛáy) ښځ.م. شړومبی، شهداوه، یو ډول نرمه او پسته گیا ده، چې د اوبو او جبو په منځ کې راشنه کېږي.
اوبزه (obáza) ښځ.م (ج. اوبزې) بزه، اوبجه، کویه، پیاو، وینه (wayna)، و گ. اوبجه.
اوبسپی (obspáy) نر.م. اوبو سپی، سگ لاهو.
اوبسمون (obsamū́n) نر.م. د اوبو اصلاح، د اوبو تنظیم.
اوبکښ (obkáṣ) نر.م. واټرپمپ، د اوبو پمپ.
اوبگرځنی (obgarzánay) نر.م. خارخوری، خورخوری، گرداب.
اوبلنباب (oblánbā́b) نر.ج. اوبلن څیزونه، مایعات.
اوبلوبه (oblóba) ښځ.م. د اوبو ورزش، چوگان لوبه.
اوبله (oblá) ښځ.م. څوری، د سفر توښه او سامان.
اوبلی (obláy) ښځ.م. کوهي، خوله خلاصي څاه.
اوبمېچ (obméč) نر.م. اوبه میچوونکې آله.
اوبن (obán) نر.م. د اوبو په څېر، آبي.
اوبڼه (obaṇá) ښځ.م. پېړوان، اوبنی، د ښځې ملامنه، هغه نری پرده ده، چې د مور په نس کې بچی په کې پروت وي.
اوبوتتی (obotatáy) ښځ.م. ج. د اوبو یو ډول مرغی ده، کب خور که هم نومېږي.
اوبورکی (obawárkay) نر.م. د څرمني توټه ده چې سقاوان یې ترڅې لاندې، پر مټ اچوي.
اوبوړی (obwā́ray) ص.نر.م. له منځه تللی.
اوبوس (ubū́s) نر.م. یو ډول توپ دی.

**اوبوسه** (obūsá) بنځ. م. زېښناکه یا نمجنه ځمکه.

**اوبول** (obawə́l) مص. مت. اوبه کول، پنه کول، خړوبول، پټي یا ښارویو ته اوبه ورکول.

**اوبومور** (obūmór) نر.م. یو ډول حشره ده.

**اوبوېش** (obwéš) نر.م. د اوبو وېش، تقسیم.

**اوبوېشګر** (obwešgár) نر.م. اوبه وېشونکی.

**اوبوېشی** (obwešáy) فا. نر.م. کیبی، میراو، میراب، میری، پانسالی.

**اوبه** (obá) بنځ. م. (ج. اوبې) ۱) د سُم پارسوب؛ ۲) له هایډروجن او اکسیجن نه جوړه مایع.

**اوبه تله** (obatə́l) بنځ. م. (ج. اوبه تلې) د اوبو تله، د ځمکې د اوار والي د پېژندلو آله.

**اوبه خور** (obaxwár) نر.م.ج. ۱) کښتونو ته اوبه ورکونه، پنونه؛ ۲) د ښارویو د اوبونې ځای.

**اوبه خوره** (obaxwára) بنځ. م. (ج. اوبه خورې) توسنده ځمکه، تږې ځمکه.

**اوبه شوی** (obašáway) مف. نر.م. پنه شوی، خړوب شوی.

**اوبه لری** (obaláray) فا. نر.م. اوبه ورکوونکی، هغه خادم، چې خلکو ته اوبه ورکوي.

**اوبه لګول** (obalagawə́l) مص. مت. اوبول، پنول، خړوبول.

**اوبه ور** (obawár) ص. نر.م. ۱) خړوب، پنه، اوبه شوی؛ ۲) بریالی، هدف ته رسېدلی.

**اوبه ورکی** (obawárkay) نر.م. اوبه ورکوونکی.

**اوبه وری** (obawáray) فا. نر.م ۱) اوبه راوړونکی، سقاو؛ ۲) اوبه لګوونکی.

**اوبه وړکی** (obawaṛkáy) نر.م (ج. اوبه وړکي) هغه توکر، چې لوښي په کې نغاړي.

**اوبه وړی** (ob(a,o)waṛáy) مف. نر.م. اوبو لاهو کړی، اوبو اخیستی.

**اوبه هوا** (obahawā́) اب وهوا، اقلیم.

**اوبي** (obí) فا. نر.م. ۱) اوبه راوړونکی، سقاو.

**اوبېږ** (awbī́ẓ) نر.م. واړه زاګه، کورنی خپلخانه.

**اوپ** (óp) اد. افسوس، اوف، د غم او درد په وخت کې استعمالېږي.

**اوپاش** (awpā́š) نر.م. آب پاش، اوبه پاشونکی، اوبه شیندونکی.

**اوپاشي** (awpā́ši) بنځ. م. د اوبو شیندنه، د اوبو پاشنه، چړکاو، چکړاو، اوبه پرخونه.

**اوپره** (oprá) ص. نب. ۱) نرم، پوست؛ ۲) نېستمن؛ ۳) پردی؛ ٤) هغه نرمه خاوره چې موږک یې له غارونو څخه راباسي؛ ٥) سرسري، ناپامه.

**اوپره پالی** (oprapā́lay) ص. نر.م. غریب پروره، بېګانه پروره، اوپره پالونکی.

**اوپره توب** (opratób) نر.م. ۱) نرموالی، پوستوالی ۲) پردی توب؛ ۳) بې کسي.

**اوپړه** (opṛá) ص. نب. وګ. اوپره.

**اوپړې پوپړې** (opaṛepūpaṛé) بنځ. ج. ګډې وډې خبرې، بې ارتباطه خبرې.

**اوت**(۱) (ū́t) نر.م. وخت، زمانه، دوره.

**اوت**(۲) (ówt) نر.م. ۱) لېوچ، نمجمن غونډي؛ ۲) غوښتنه، ارمان، زړه غوښتنه، هیله.

**اوت کېدل** (awtkedə́l) مص. ل. لېو غونډې وچېدل، نوجن کېدل، وچ بخون، وچ بیږن.

**اوتاد** (awtā́d) ص. نر.ج. ۱) لوی خلک، بزرګان، ولیان؛ ۲) مېخونه، موږی.

**اوتار** (awtā́r) نر.ج. (م. وتر) ۱) شنه، ژی، غاړ؛ ۲) تارونه.

**اوتاک** (ū́,otā́k) نر.م. خونه، اطاق، استوګنځی.

**اوتای** (awtā́y) نر.م. (ج. اوتی) ډنډ، جسوړ، جړوب، د کلیو په منځ کې د اوبو تالاو.

**اوتر** (awtár) ص. نر.م. ګډوډ، سرګردان، کاواک، پرېشان، وارخطا.

**اوترکېدل** (awtarkedə́l) مص. ل. وارخطا کېدل، پرېشانه کېدل، کاواک کېدل، اوترېدل.

**اوتکی** (ūtkáy) نر.م. کوچنوټی تاخچه، وتکی، کوچنی وت، چوله، تاخچه، وړه سوره، چوه.

**اوتګی** (ūtgáy) نر.م. دودکښ، دریڅه، روزان، بخوره، منګ، مګ، موری.

**اوتو** (ūtū́) نر.م. د اوتو کولو آله، هغه آله چې د کالیو ګونجې هواروي.

**اوتومات توپک** (ūtūmāttopák) نر.م. خودکار توپک.

**اوته** (awtá) ښځ. م. (جم اوتې) کیګه، وتره ځمکه، د کرلو لپاره وتره شوې ځمکه.

**اوتې بوتې** (awtebáwte) ښځ. ج. اپلتې، پرتې، ګډې وډې او بې مانا خبرې، چټیاټ.

**اوټ**(۱) (ūṭ) ص. نر.م. ووټ بالی، بوک، سربښکته کوته، پورته، بوک چک، چک بوک.

**اوټ**(۲) (awṭ) ص. نر.م. خارجول: ۱) په فوټبال او یا نورو لوبو کې د توپ وتل له تعین شوي حد نه ۲) په شراب چښلو کې افراط؛ ۳) له میدان نه د حریف خارجول.

**اوټه**(۱) (awṭá) ص. ښځ. م. درواغ، بې مانا خبره.

**اوټه**(۲) (ūṭá) بادي اوبښه.

**اوټی** (ūṭáy) نر.م. بادي اوبښ، د سپورلې اوبښ.

**اوج** (awj) نر.م. لوړوالی، اوچتوالی، هسکتیا، عظمت، مګزیموم، اخرنی حد.

**اوجاړ** (ūjā́ṛ) ص. نر.م. رنګ، ویران، شاړه شوړ، ویجاړ، خرابه، د آباد ضد.

**اوجاړوالی** (awjāṛwā́lay) نر.م. رنګوالی، ویرانوالی، ویجاړوالی، شاړوالی.

**اوجاړه اوجاړې** (ūjāṛaūjā́ṛi) ښځ. م. ج. ورانه ورانې، ویجاړه ویجاړې، خرابه خرابې.

**اوجاړېدل** (ūjāṛedə́l) مص. ل. ویجاړېدل، ورانېدل، شاړېدل، خرابېدل.

**اوجره** (ūjrá) ښځ. م. دېره، حجره، مېلمستون.

**اوجړی** (ūjṛáy) نر.م. لړی، اوژړی، اوجړی، د شارویو معده.

**اوجغونه** (ojǧwána) ښځ. م. وجغنه، وژغنه، دوزې ویښته.

**اوجغن** (ojǧán) ص. نر.م. له اوجغنو څخه جوړ شوی شی، اوجغونې لرونکی.

**اوجه**(۱) (ojá) ښځ. م. چتوری، ښت میری، د ورمېږه (ښت) کوتی، د ښت کوتی، کوت.

**اوجه**(۲) (ūjá) ښځ. م. (ج. اوجې) اوږه، وږه، ووږه.

**اوجې** (ūjáy) ښځ. م. ج. اوږې، ووږې، اوګې.

**اوچاړ** (učā́ṛ) نر.م. کښوره، د بالښت (نبالی، توشک) پوښ.

**اوچت** (očát) نر.م.ج. هسک، جګ، لوړ، پاس.

**اوچت توب** (ūčattób) نر.م. اوچت تیا، لوړتوب، هسکوالی، جګوالی، دنګوالی.

**اوچتوالی** (ūčatwā́lay) نر.م. جګوالی، لوړوالی، هسکوالی، پورته والی.

**اوچتول** (ūčatawə́l) مص. مت. پورته کول، جګول، لوړول، خېژول.

**اوچتیا** (ūčatyā́) ښځ. م. لوړتیا، جګوالی.

**اوچتېدل** (ūčatedə́l) مص. ل. جګېدل، لوړېدل.

**اوچکول** (ūčkū́l) نر.م. هغه وری چې یو کلن شوی وي، پېشرلی یې هم بولي.

**اوچن** (ūčán) نر.م. د شیدو ورکوونکو شارویو د شیدو د وچېدو ناروغتیا.

**اوچونی** (ūčūnáy) نر.م. ۱) شپږ میاشتنی وری؛

۲) د پسونو او وزو يو ډول ناروغتيا.

**اوچه** (awčá) ښځ. م. ښاخې، دوه ښاخي سکو، دوه ښاخې، دوه ښاخي (دوه ښوخې) لرګی.

**اوچيچې** (óčičí) ښځ. م. اڅچيچې، وخچيچې، د مور له خوا خپل کوچني ته ويل کيږي.

**اوچې پوچې** (ūčepūčé) ښځ. ج. چټي خبري.

**اوڅار** (awcắr) ص. نر. م. ښکاره، څرګند، جوت.

**اوڅارتوب** (awcārtób) نر. م. څرګندوالی، ښکاره توب، مشهورتيا، جوتوالی.

**اوڅارول** (awcārawál) مص. مت. څرګندول، ښکاره کول، جوتول، مشهورول.

**اوڅنډ** (ocánḍ) نر. م. اووه اړخيز، اووه مخيز، اووه مخه لرونکی، اووه خواييز، اوه ضلعي.

**اوخ** (óx) اد. د ارمان او افسوس کليمه ده، وخ، ويښ.

**اوخولی** (oxólay) نر. م. بوړکی، پراته، د تبې غوره ډوډی، خوږه او غوره ډوډی.

**اوخې** (ūxáy) ښځ. م. ج. نو، ببو، هغه توهمي بلا چې ماشومان پرې ويروي.

**اود** (awd) نر. م. ډنډ، جوړ، تالاو، تالاب.

**اودان** (awdắn) نر. م. د اوبو ساتلو فلزي لوښی.

**اودس** (awdás) نر. م. د لمانځه نه مخکې د وجود د پاکلو غړو مينځل.

**اودس ماتی** (awdasmắtay) نر. م. ډکې او تشې ميتيازې.

**اودوم** (ūdúm) نر. م. ۱) چاره، علاج، يو ډول ټوټکه؛ ۲) دم، اوده، توری تعويذ.

**اوده** (ūdá) ښځ. م. اجازه، دم، د مار، لړم او نورو چيچونکو خزندو او ناروغيو د مولو اجازه.

**اوده اخيستل** (ūdaaxistál) مص. مت. د دمولو اجازه اخيستل.

**اوده ګر** (ūdagár) فا. نر. م. اوده لرونکی، پاړوګر، د اودې څښتن، دمونکی، دم ګری.

**اوده ورکول** (ūdawarkawál) مص. مت. د دمولو اجازه ورکول.

**اودې لاندې راوستل** (ūdelānderāwastál) مص. مت. ۱) تر دم لاندې راوستل، د دم تر اغېز لاندې راوستل، ۲) څانته ايلول.

**اودي** (ūdí) نر. م. يو ډول رنګ، شين بخون رنګ.

**اوډر** (awḍár) ص. نر. م. پټ، پناه.

**اوډر نيول** (awḍarniwál) مص. مت. پټو خبرو ته غوږ نيول، اسګيرل.

**اوډل** (oḍál) مص. مت. ترتيبول، سمول، سمبالول، درستول، برابرول.

**اوډل شوی** (oḍalšáway) مف. نر. م. ترتيب شوی، سمبال شوی، برابر شوی، سم شوی.

**اوډل کېدل** (oḍalkedál) مص. ل. ترتيبېدل، سمېدل، برابرېدل، سمبالېدل، درستېدل.

**اوډنی** (ūḍánay) نر. م. تيکری، پړونی، زړوکی.

**اوډون** (ūḍún) تنظيم، ترتيب، راغونډېده.

**اور** (ór) نر. م. هغه څه چې د لرګو يا سکرو له سوځولو نه منځ ته راځي او رڼا او تودوخه لري.

**اوراق** (awrắq) نر. م. ۱) ارشيف، د يوې موسسې اداري څانګه؛ ۲) مجازاً ژوبل، تاواني شوی؛ ۳) بلګونه، پاڼې.

**اوراورکی** (ororákay) نر. م. اوربلک، تندانه، اوربلکی، يو ډول حشره ده چې د شپې الوځي او د بڅري په څېر رڼا کوي.

**اوربڅرکی** (orbacárkay) نر. م. د اور ذره، سپرغی، د اور سپېنکی، بڅری.

**اوربخوله** (orbaxwála) ښځ. م. پينځه، اوربلی، وربخوله، پايڅه.

اوربشکه (orbáška) ښځ.م. داوربشوپه ځهر وانبه

اوربشینه (orbašína) ص. ښځ.م. اوربشینه دودی، روټه.

اوربل (orbál) نـر.م. ۱) د پښـفـلي نجـلـي په تندي څوړند ویښتان، پیکی؛ ۲) کـورنی، خپلخانه، د کورنی غړي؛ ۳) د دزو د پیلی قومانده.

اوربلک (orbalák) ښـځ.م. ۱) اوربـلـکـی، اوراوره کی، تندانه؛ ۲) نـر.م. شـونتی، یژی؛ ۲) ص. نر.م. اوربلوونکی.

اوربلوونکی (orbalawūnkáy) فـا.نر.م. اور لګوونکی، څوک چې اور بلوي.

اوربند (orbánd) نر.م. دزبند، بدن، د تودي جګړي د بسولو (بندولو) قومانده.

اوربندی (orbandáy) فـا.نر.م. منځګړی، دزي بندوونکی.

اوربوز (o,ūrbūz) نر.م. ۱) سونته، شونډک، پوزه - خوله؛ ۲) دانسان ځبره، ورسک.

اوربوی (orbúy) نـر.م. باړی، باغچه ځمکه، له کور سره نژدي ځمکه.

اوربه (orbá) نر.م. اوروالا، د حمام ګرموونکی، د اور اچولو تاکلی سړی.

اوربېړۍ (orberáy) ښځ.م. د بخار بېړۍ، هغه بېړۍ چې د اور په انجن چلېږي.

اورپښت (orpást) نر.م. پتنګ، پروانه.

اورپک (orpák) اور پکی، اورګډی، شرګډی.

اورتون (ortún) نر.م. بتی، نغری، داش، آتشکده.

اورته(۱) (awráta) ښځ.م. (ج. اورتې) ښځه، ماینه، نکاح کړې ښځه، ماندینه، ارتینه.

اورته(۲) (ortá) نر.م. هلته، هورته، هغلته، اخوا.

اورته(۳) (ortá) نـر.ج. څنې، سنې، د بوجی، جوال او... د خولو د ګندلو مزی.

اورتک (orták) نـر.م. بکـره، بجکوره، بکری، اورکوونکی دبره.

اورچینې (orčiné) نر.م. بهر، د باندې، ورچنه.

اورڅک (orcák) نر.م. و ګ. اورڅګ.

اورخاړی (orxā́ray) نـر.م. ریخی: ریخړېدنه، د څاروپو د ریخ ناروغي.

اورډکی (ordákay) نـر.م. اورلړونی، سپیځ، د اورلړ لو لرګی، د اور کېږلو لرګی.

اوروړی (orráy) نر.م. (ج. اوروړي) د ګیدړ اروری، اونګا یا انګولا، ونګلېده، د ګیدړ آواز.

اورژبی (oržábay) ص. نـر. فصیح، بلیغ، خبر لوخ، ژب غړوند.

اورزه (orzá) نـر.ج. وروه، د نوي لـنـګ څـاروي لـومړني ژېړ بخـون شـیده، چې د تودوخې په وسیله د چکـې غـوندې تینګېږي او خوندور خواږه تری لاس ته راځي.

اورسونګ (orswáng) اور سوی، اور لګېدنه.

اورشو (oršó) ښځ.م. څرځای، ورشو، د څاروپو د څرېدو ځای.

اورشیند (غر) (oršínd) نـر.م. اورشیندونکی، آتشفشان.

اورښت (orást) نر.م ۱) باران، شیګره؛ ۲) وریها، ورېدنه.

اورغالی (orğā́lay) نر.م. نغری، داوربلولو ځای.

اورغو (orğó) ښځ.م. بېدیا، سارا، صحرا، ډاګ، میره، بیابان، ورغو، وراغه.

اورغوی (orğáway) و ګ. ورغوی.

اورغی (orğáy) ښځ.م.ج. دود، رغی هغه لوګی چې د کوټې په چت پورې نښتی وي.

اورکی (orkáy) نر.م. ۱) و ګ. اوراوره کی؛ ۲) تریخ سړی، حساس سړی، سخت مزاجه انسان.

**اورګاډی** (orgā́ḍay) نر.م. ریل، ریل ګاډی.

**اورګان** (orgā́n) نر.م. ۱) غړی؛ ۲) سازمان، تنظیم، ۳) اداره.

**اورګډی** (orgā́ḍay) نر.م. شیطان سړی، وران کاری، چغلګر، اورلړونی.

**اورګنې** (ogrā́ṇe) ښځ.م. هغه خېمه یا کېږدۍ چې له رنجو او زرګو څخه جوړه شوې وي.

**اورلړونی** (orlaṛūnáy) نر.م. اورلړومی، اورلړی، اورډکی، داور لړلولرګی یا سیخ.

**اورلګاو** (orlagā́w) اورګډی، شرګډی، پساتي.

**اورلګیت** (orlagī́t) نر.م. ګوګړ، تیلی، د اور دبلی، میشکنی.

**اورلوبه** (orlóba) ښځ.م. آتشبازي.

**اورمخی** (ormaxáy) سورمخی، سورګورلغ.

**اورمړ** (ormáṛ) نر.م. دچا په کور کې چې مړی شوی وي.

**اورمړی** (ormaṛáy) نر.م. اور وژونکی.

**اورمږک** (ormoẓák) نر.م. سمندر، د اورچینجی.

**اورمکی** (ormakáy) نر.م. پتنګ، پرپرکی.

**اورمولی** (ormoláy) نر.م. اسهال شوی ماشوم.

**اورمېږ** (orméẓ) نر.م. (ج. اورمېږونه) مرکنډی اورمېږ، ورمږ، مغزی، څټ، مکنډی.

**اورنوسی** (ornū́say) نر.م. امبور، آتشګیر.

**اورنی** (orā́nay) ص. نر.م. اورین، آتشین، آتشي.

**اورڼی** (orṇáy) نر.م. روڼی، ورڼی، هغه توکر چې کوچنی په کې تړي ،رڼی.

**اوروالا** (orwā́lā) نر.م. اوربه، اوراچوونکی، څوک چې په ګانې کې اور بلوي.

**اوروژنه** (orwažána) ص. نر.م. اطفائیه.

**اوروژونکی** (orwažūnkáy) نر.م. اطفائیې.

**اوروژونی** (orwažūnáy) نر.م. د اور وژلو آله.

**اوروغ** (owróğ) نر.م. ج. سینګار، ډول ،ښایست.

**اورول**(۱) (orawál) مص. مت. ۱) اوښتل، شیندل؛ ۲) باران کول، باران ورول.

**اورول**(۲) (awrawál) مص. مت. اروول، وراوروول، ترغوږ کول، ترغوږ رسول.

**اوره** (orá) نر.م. ج. ۱) اوربښ، نري وربښ ،وربخه، وروه، خره لړه یا توره لړه؛ ۲) اورښت، باران، شیګره، وورینګی، وور ،اوریا، اوری.

**اوره رنګ** (awraráng) نر.م. شیشرنګ، سره رنګي دارو چې خوږو سترګو ته یې وراچوي.

**اورلړه** (oralaṛá) ښځ.م. (ج. اوره لړې) خره یا توره لړه، نري وربښ او دونډ.

**اوری**(۱) (oráy) نر.م. (ج.اوري) ۱) وزی، ګډوری، د مېږې بچی: ۲) یو ډول بوټی دی.

**اوری**(۲) (awráy) نر.م. باران، وریا، اورښت.

**اورې** (oré) نر.م. ج. هلته، دلې، هغه خوا.

**اورۍ** (oráy) ښځ. م. ج. د غانبونو د رېښو غوټه، د نوک لوزی، د نوکانو د بېخ غوټه.

**اوریا** (oryā́) ښځ.م. اورښت، واوره، باران.

**اوریامېچ** (oryā́meč) نر.م. د باران د اندازې د معلومولو آله.

**اوریته** (oretá) ق. دلته، دلې ،هغه خوا، دې خوا.

**اورېدا** (awredā́) ښځ.م. اورېدنه، سماع، شنوا.

**اورېدل** (oredál) مص. ل ۱) وورېدل، ورښت، وریا باران؛ ۲) مص. مت. غوږو ته د اواز رسېدل.

**اوریز** (awrī́z) نر.م. د اورېدو وړ، سمعي، سماعي.

**اوریزوینیز** (awrrizwinī́z) نر.م. سمعي و بصري.

**اورووونکی** (orawū́nkay) فا.نر.م. ۱) باران کوونکی ،ورندی؛ ۲) شنونکی؛ ۳) د خبرو اترو په جریان کې د مخاطب په مقابل کې ویونکی.

**اوړېګی** (awrégay) نر.م. هغه سپرغي (ګلان) چې په تغرونو، غالیو او شړیو کې جوړېږي.

**اوړ** (awṛ) نر.م. (ج. اوړونه) د تغر، د جولاګانو تانستې یوه آله ده.

**اوړبه** (oṛbá) نر.م. (ج. اوړبانه) اوړه خرشونکی

**اوړکی** (oṛkáy) نر.م. وړوکی، ورکوټی، کوچنی ماشوم، هلک، کمکی.

**اوړل** (awṛál) مص. مت. مرل، اړول، بېلول، چڼول، یوه یوه دانه کول.

**اوړنی** (oṛanáy) ښځ. م. ج. ۱) پړونی، ټیکری؛ ۲) نر.م. اوړنی، اوړنی، هغه توکر چې ماشوم په کې تړي؛ ۳) ص. نر.م. د اوړي شی.

**اوړوبی** (oṛobáy) نر.م. اتوب، شلالی، ړوز، بې خونده خواړه.

**اوړون** (awṛū́n) نر.م. اوښتون، ګډان، قلب.

**اوړونی** (awṛū́nay) نر.م. اوښتونکی، اوړېدونکی د ګردان وړ.

**اوړول** (oṛawál) مص. مت. اوړه کول، اوړل، اړل، ډېره کول، میدول، میده کول.

**اوړه** (awṛá) ښځ.م. ۱) د کار آله؛ ۲) ښځ. م. اړم، وروم، تمبه؛ ۳) نر.ج. ایره، وره، دوره، دونه، وږه.

**اوړه شوی** (oṛašawáy) مف. نر. میده شوی.

**اوړه کونه** (oṛakawána) ښځ. م. ۱) میده کونه، میدونه، ایره کونه؛ ۲) ژرنده کونه.

**اوړی** (oṛay) نر.م. دوبی، د کال تود موسم.

**اوړېدل** (awṛedál) مص. ل. ۱) اوښتل، اپوټه کېدل، نسکورېدل؛ ۲) میدېدل، دوتېدل.

**اوزار** (awzā́r) نر.ج. د کار اسباب او وسایل.

**اوزکی** (ozakáy) نر.م. دلرګو ګېډی، دلرګو اوزه، د لرګو غوزی، د لرګو اوځه.

**اوزګار** (ozgā́r) ص. نر. وزګار، خلاص، بېکار، فارغ.

**اوزګارتوب** (ozgāṙtob) نر.م. وزګارېدنه، لېه توب، وز رتیا.

**اوزګارول** (ozgārawúl) مص. مت. وزګارول، بېکاره کول، له کاره ایستل.

**اوزګړی** (ozgū́ṛay) نر.م. (ج. اوزګړي) وزګړی، وزګوړی، د بزې نر، وز.

**اوزه** (ozá) ښځ. م. (ج. اوزې) و ګ. وزه.

**اوزی** (ozáy) نر.م. وزر، لهجه، د پسه یوه پښه.

**اوژری** (ožráy) نر.م. جری، لری او کولمې.

**اوژن** (ožán) نر.م. د اوبو ژۍ چې د آش ورکولو په حال کې وي.

**اوږبی** (ozbáy) ښځ.م. ج. ښکلې مرغۍ.

**اوږد** (oẓd, ūẓd) ص. نر.م. غځېدلی، د لنډ ضد.

**اوږداندی** (oẓdānday) ص. نر.م. احتیاط کوونکي دور اندېش، عاقبت اندیش.

**اوږدول** (oẓdawál) مص. مت: غزول، غځول.

**اوږده** (oẓdá) ښځ.م. (ج. اوږدې) و ګ. اوږد.

**اوږده مېږیانه** (oẓdamezyāná) ښځ.م. ۱) پیلی لوی تور مرچ؛ ۲) د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**اوږدېدل** (oẓdedál) مص. ل. غځېدل، لوېدل.

**اوږدمهالی** (oẓdmahā́lay) نر.م. ډېر مهالی، د اوږدې مودې لپاره.

**اوږکی** (oẓákay) نر.م. اوژکی، اوږه، هوږه، ووږه.

**اوږمکه** (oẓmáka) ښځ.م ۱) سپوږمۍ، میاشت، اوژمکه؛ ۲) د آسمان ناوې، د اسمان پېغله.

**اوږمی** (oẓmáy) ښځ. م. ج. ۱) سپوږمۍ؛ ۲) د سپوږمۍ رڼا.

**اوږه** (oẓá) ښځ. م ۱) و ګ. اوږکی؛ ۲) ووږه، وږه، د مټ له سرنه د ورمېږه تر پای پورې برخه.

**اوږه ور** (oẓawár) نـر.م. ۱) د لـویو اوږو خاوند؛ ۲) پهلوی، قوي، زورور، لهستلی.

**اوږی** (oẓáy) نـر.م. (ج. اوږي) پیمانه، تغی، د اندازه کولو ټاکلې اندازه، صاع.

**اوږی** (oẓáy) ښځ.م.ج. د ښځود غاړې گانه.

**اوس** (os) ق. دستي، لاس په لاس. دا شبیه.

**اوسا** (osā́) ص. نب. و.گ. هوسا.

**اوسار** (awsā́r) نر.م. ترسنیری، ترسری، هغه تسمه چې د حیوان وریوز ته وراچوي.

**اوساروول** (awsārawál) مص. مت. ۱) ترسیری وراچول؛ ۲) تابع کول، اهلول.

**اوسان** (awsā́n) نر.م. حس، هوښ، عقل.

**اوسانه** (awsā́na) ښځ.م. کیسه، نکل، افسانه.

**اوستا** (awistā́) نر.م. اوستاک، ایستا، اویستا، استا، د زردښتیانو مقدس کتاب دی.

**اوسپنتوږی** (ospantoẓáy) نر.م. سوان، سوهان، هغه آله چې اوسپنه پرې توږي.

**اوسپنپوښ** (ospanpūṣ) نر.م. پرباموتو او بلیو له اوسپنیزو ځادرو څخه جوړ پوښونه.

**اوسپنخړی** (ospanxā́ṛay) نـر.م. سپینخړی، ۱) د بټیو په ایرو کې هغه کلک شیان چې د اور د حرارت په ذریعه جوړیږي.

**اوسپنخوره** (ospanxóra) ښځ.م. د اوسپنې زنگ، مچه خور، مرچه خورک.

**اوسپنمزی** (ospanmázay) نر.م. د اوسپنې تار، سیم.

**اوسپنه** (ospána) ښځ.م. وسپنه، خړرنگی فلز دی.

**اوستربل** (ostarbál) نر.م. پـښنه.

**اوسترمهال** (ūstarmahā́l) نـر.م. راتلـونکی زمانه، آینده زمانه.

**اوستکار** (ostakā́r) نر.م. ماهر، استاذ، ختګر، ترکان، کسبگر.

**اوستکاري** (ostakā́ri) ښځ.م. کاریگري، استادي، ختګري، کسب گري

**اوسط** (awsát) ص.م. منځنی، میانه، منځ.

**اوسکارل** (oskārə́l) مص. مت. ښکارل. شکارل، ویشکه کول، ښکشکارل، سپی ورکیښه کول.

**اوسمهال** (osmahā́l) حال زمانه.

**اوسن** (osán) نـر.م. اوس وخت، اوسنی، موجوده، سملاسي، لهتکه.

**اوسند** (osánd) نر.م. استوگن، اوسېدونکی.

**اوسنی** (osánay) نـر.م. د اوس وخت، موجوده، سمدلاسه، معاصر.

**اوسول** (osawál) مص. مت. ۱) وسول، مېشتول، ځـای پرځای کول، دېره کول؛ ۲) پنډول.

**اوسی** (osáy) ښځ.م. (ج. هوسۍ) سارانی خرچک ځاروی دی، چې لنډه لکۍ لري.

**اوسیچی** (ūsičáy) نـر.م. د هوسۍ سپښتي، د هوسۍ ښهۍ، د هوسۍ ښنگری.

**اوسېدل** (osedál) مص. ل. مېشته کېدل، اړول، پنډېدل، دېره کېدل، استوگنه کول.

**اوسېلجن** (awseljā́n) فا. نر.م ۱) سور اسوېلی کوونکی، سره سېلوې ایستونکی.

**اوسېلل** (awselál) مص. ل. اوسېلی کول، آه کښل، سور اوسېلی کول.

**اوسېلی** (awseláy) نـر.م. ۱) افسوس کـول؛ ۲) سره ساه، آه، سور سېلوی.

**اوسیومیټر** (osiyomiṭár) نر.م. فشار سنجوونکی، د انسان د وینې د فشار د اندازه کولو آله.

**اوش** (oš) نر.م. ۱) وش، هش، د خره د درولو لپاره اواز؛ ۲) افسوس.

**اوشاره** (oṡārá) ښځ.م. (ج. اوشـاري) اوښکی، ملغ، اوښاره، یو ډول ملغ دی.

**اوښ** (ūṣ,oṣ) نر.م. یو جگ څاروی دی، اوږده غاړه او ورہ لکی لري.

**اوښبنه** (oṣbána) ښځ.م. (ج. اوښبني) هغه ښځه چې اوښان پیایي.

**اوښبون** (oṣbūn) نـر.م. (ج. اوښبانه) اوښبه، ساروان، هغه سړی، چې اوښان پیایي.

**اوښتل** (awūṣtál) مص. ل. ۱) بدلېدل، گرځېدل، اوړېدل، انحراف؛ ۲) چپه کېدل.

**اوښتون** (awūṣtūn) نر.م. بدلون، اوړون.

**اوښتی** (awūṣtáy) فا.نر.م. ۱) بېرته گرځېدلی، بدل شوی، اوړېدلی؛ ۲) بې لارې.

**اوښتیایي** (awūṣtyāyi) اوښتونی، انقلابي.

**اوښتیایي پېر** (awūṣtyāyipér) نرم. اوښتـوني پېر (په ادب کې).

**اوښسپرلي** (ūṣspárli) ښځ.م.د اوښ سپرلی.

**اوښ غویی** (oṣǧwáyay) نـر.م. زرافه، د اوښ په څېر حیوان دی، چې مخنی پښې یې اوږدې او وروستنی پښې یې لنډې دي.

**اوښکه** (oṣká) ښځ.م. ووښکه، اېښکه.

**اوښکې بهېول** (oṣkebeyawál) مص.ل. اوښکې بهول، ژړل، اوښکې څڅول، اوښکې تویول.

**اوښکی** (ūṣkáy) (ج. اوښکي) و گ. وښکی.

**اوښکی** (oṣkáy) ښـځ.م.ج. یو ډول غټ چېنجی دی چې د مار په څېر ښکاري.

**اوښکینی** (oṣkenáy) ص.نر.م. ښلي، بدنیته، تور نیته، څوک چې د اوښ په څېر کینه لري.

**اوښلن** (oṣlán) ص. نر.م. هغه څوک چې ستر گې یې تل اوښکې لري.

**اوښلن لوگی** (oṣlanlūgáy) نر.م. اوښلن گاز، اوښکې بهوونکی گاز.

**اوښ مرغه** (oṣmarǧá) نـر.م. یو قوي مرغه دی چې اوږدې پښې او لنډه لکۍ لري.

**اوښ والا** (oṣwālā) نـر.م. د اوښانو څښتن، د اوښانو ساتونکی، د اوښو خاوند.

**اوښه** (oṣá) ښځ.م. (ج. اوښې) ماده اوښ.

**اوښی** (awṣáy) نـر.م. اخښـی، د ښځې یا مـاینې ورور او د خور مېړه.

**اوښیمه** (oṣéma) ښځ. م. اوسیمه، ریمه، سیمه اوښه، د اوښې جنسي تمایل.

**اوصاف** (awsāf) نر.ج. و گ. وصف.

**اوضاع** (awzāʕ) ښځ.ج. و گ. وضعه.

**اوغز** (oǧáz) نر.م. غوز، چارمغز، اکوړ متک.

**اوغم** (oǧám) نر.م. ۱) کبر، لویي؛ ۲) فخر، ویاړ.

**اوغه** (oǧá) ښځ.م. د انسان د خېټې ،گېډې، نس لوی چینجی.

**اوقاف** (awqāf) نر.ج. هغه ځمکه، مال یا شی چې د بې وزلو سره د مرستې لپاره جماتونو، هدیرو او زیارتونو ته ورکول کېږي.

**اوقیانوس** (owqyānūs) نر.م. بحر، سمندر، د تولو هغو اوبو مجموعه چې د ځمکې چارچاپېره یې نیولې ده.

**اوک** (ok) ص. نر.م. نېغ، دوک، سم، سیخ، سک.

**اوکا** (okā) ښځ.م. (ج. اوکې) واک، اجازه.

**اوکاښه** (okāṣá) ښـځ.م. (ج. اوکاښې) ترنگړ، گونده، گینده، کوری، کمبو.

**اوکر**(۱) (okár) نر.م.ج. کنگر، لگړ،کنکړ،کامپور، دڅاروي پاتې شونې واښه.

**اوکر**(۲) (awkár) نر.م. د مخ نښه، د څېرې لیکه، د مخ علامه، د څېرې نښه.

**اوکشه** (awkašá) ښځ.م. تل، مدام، هر مهال.

**اوکښه** (awkáṣa) ښځ.م. د کنګالي لوښی.

**اوکوب** (ūkób) نر.م. ۱) شان او شوکت، دبدبه، لویي؛ ۲) طاقت، قدرت.

**اوکه**(۱) (oká) ق. ۱) بېخي، بالکل، قطعي، هېو، هېڅکله؛ ۲) نر.م. (ج. اوکی) چلم.

**اوکه**(۲) (awká) ص. نر.م. (ج. اوکی) ۱) د بېر مور، بېخي مور؛ ۲) کمزوری؛ ۳) په کړاو کې؛ ٤) ګران، سخت، مشکل.

**اوکی** (awkáy) نر.م. ستمېدنه، سلېدنه، ستینګی، ستمی، ژر ژر سېلوی څکونه.

**اوکې** (oké) نر.م. هو، هوکې، وو، بلې، ښه، آه.

**اوکی** (okáy) نر.م. ۱) ووکی، کوژده، کوزده؛ ۲) ښاروالتي، پایوازي، پښې خلاصی.

**اوګرایي** (ogrāyi) ښځ.م. تجارتي قسط، هغه تاکلې پیسې، چې د تجارانو ترمنځ د اوونی په معلومو ورځو کې د تجارت د راکړې ورکړې له درکه سره تبادله کېږي.

**اوګره** (ográ) ښځ. م. اوګره، یو ډول خواږه دي.

**اوګړایي** (ogṛāyi) ښځ.م. و ګ. اوګرایي.

**اوګړې بوګړې** (awgṛebawgṛé) ښځ. م. ۱) اوتې بوتې، شورماشور، جنجال؛ ۲) نوې، تازه.

**اوګوټ** (awgóṭ) نر.م. (ج. اوګوټونه) کښتی، کشتي، بېړی، انګوټ، د اوبو جهاز.

**اوګی** (ogáy) ښځ.م. ۱) دشنو یو ډول دی، چې دانې یې نرمې وي، هغو شنوته چې کلکې وي تیتاقه هم وايي؛ ۳) نر.م. صاع، اوړی، د غلو، دانو یوه پیمانه ده.

**اول** (awál) ص. نر.م. لومړی، مخکې، اولنی.

**اولاد** (awlād) نر.م. زوزاد، (ج. اولادونه) زوزات، لونه او زامن، بال بچ.

**اولال** (awlāl) نر.م. و ګ. اوکر.

**اولتیماتوم** (oltimāṭúm) نر.م. وروستی شرط، قطعي تصمیم، ګواښ، اخطار.

**اولجه** (oljá) ښځ.م. ولجه، غنیمت، شوکه، لوټ، پردی مال چې په جنګ سره ترلاسه شي.

**اولس** (olás) نر.م. ۱) ولس، ملت؛ ۲) قام، د یوې سیمې اوسېدونکي.

**اولسمشر** (ūlosmašár) نر.م. ص. ولسمشر، جمهور رئیس، د دولت رئیس، د دولت مشر.

**اولسوال** (olaswāl) نر.م. ولسوال، حاکم، د یوه ولایت د یوې سیمې تاکلی مامور.

**اولسواله** (olaswāla) ښځ.م. ولس پالنه، عزیزولي، عزیز ګلوي، ولس ګلوي.

**اولسي** (olási) ص. نر. نب. ولسي، د ولس، هغه څه چې په ولس پورې اړه ولري.

**اولسي جرګه** (olasijárga) ښځ.م. ولسي جرګه، د ولس له خوا د ټاکل شوي استازو جرګه.

**اولکه** (olká) ښځ.م. (ج. اولکې) ځمکه، خاوره، اقلیم، وطن، د زېږېدو ټاټوبی.

**اولګ** (olág) نر.م. مزد، برخه، څتی، دهقاني، د زمیندارو له خوا بزګرانو او مزدورانو ته د فصل څخه ورکړې شوې برخه.

**اولګی** (olgáy) نر.م. د بیدیو لوبه، سه بجل.

**اولمه** (olmá) نر.م. ۱) و ګ. میلمه؛ ۲) ښځ.م. د وربخې نه وروسته زنا؛ ۲) سپرلی.

**اولنی** (awalánay) ص. نر.م ۱) رومبنی، مخکینی، لومړنی، اتهون؛ ۲) پخوانی سړی، پخوانی څوک.

**اولو** (oló) ښځ. م. د ګوړې شیره، ګروبی، ګوړبی.

**اوله**(۱) (olá) نر.م. ۱) هغه وري او سېرلي چې له میندو څخه جلا شوي وي؛ ۲) د څه وخت لپاره سوله کول یعنې تیږه ایښودل.

اوله(۲) (awála) ص. ښځ. م. لومړی، ړومبنی، اولنی مخکینی.
اولی (oláy) ښځ. م. شورماشور، شورغوغا، ځوږ، شوربگت، های هوی، غالمغال.
اولی (awláy) ص. نر. م (ج. اولي) بدعمله، بدخویه، بدعادته، بداخلاقه، بدگذرانه.
اولیا (awliyā́) نر. ج (م. ولی) ۱) بزرگان، ولیان، نېک خلک؛ ۲) دوستان، خپلوان.
اولیگارشي (oligā́rši) ښځ. م. دځو کسو باداري او واکداري.
اولین (awalín) ص. نر. م. لومړنی، ړومبنی.
اوم (ūm, óm) ص. نر. م. ۱) خام، کچه؛ ۲) بې تجربې، ناپوه؛ ۳) کمکی هلک، کچه خوله؛ ٤) نر. م. ج. د برقي مقاومت واحد.
اومارگه (omārgá) نر. م. دکوچنیانو خوسا دانې.
اومال (omā́l) نر. م. کنبی، میراو، اوبه وری، د اوبو د بند چوکېدار، اوبه وېشونکی.
اومالي کول (omālikawál) مص. مت. ۱) داوبو د بند څارنه کول؛ ۲) پل وهل، تعقیبول.
اومت (omát) نر. م. وگ. امت.
اومتوکي (omtóki) نر. م. اومه مواد.
اومتیا (omtyā́) ښځ. م. ۱) خامي، خامتوب، اومولی، خامولی؛ ۲) کم عقل والی، بې تجربه گي.
اومړی (omaṛáy) ص. نر. م. خام تار، ستوی، کچه، تیسکن.
اوم غلن (omǧalán) ص. نر. م. اومغدن، بیمغدن، موغلدن، نیم پخته، مغلن.
اومک (omák) نر. م. خام، اوم، اومغلن، اومغدن.
اومکه (omáka) ښځ. م. کچه څمکه، خامه څمکه، اومه څمکه، اوبره څمکه.

اومه خوله (omaxwlá) ص. خامه خوله، وومه خوله، ژنی، هلک.
اومېن (omén) نر. م. هیله، ارزو، اسره، امید.
اومېنواره (omenwā́ra) ص. ښځ. م. اومیدواره، حامله، بلاربه ښځه (یوازې شفاهي ویل کېږي)
اونت (ont) نر. م. سپلتی، لری، هزار خانه، کتکی، د څارویو لری.
اونس (ons) نر. م. د (۳۰) گرامو معادل یو وزن.
اونگ (awáng) نر. م. له اوسپنې یا لرگي نه جوړ لوښی، چې مسالې په کې میده کوي، لنگری، هاون، چتو او بغری یې هم بولي.
اونگی (angáy) ښځ. م. ج. سپوږمی، اوږمی.
اونگی (ongáy) نر. م. (ج. اونگي) وگ. اینکی.
اون لغړ (onlaǧáṛ) ص. نر. م. لوڅ لغړ، بربند.
اونول (onawál) مص. مت. بربنډول، لوڅول.
اونی (onáy) ښځ. م. ج. هفته، اووه ورځې.
اونی (onáy) نر. م. د بر غږېدونکی.
اوول (owál) نر. م. اوون، ښځنی گامټ، ښځنی تخمه.
اوونیزه (onizá) ښځ. م. جریده، هفته نامه، اووه ورځنی خپرونه.
اووی (owáy) نر. م. ۱) چرخوېل، تاج؛ ۲) د تندي وینبته.
اوه(۱) (owá) نر. م. ښځ. ۱) هغه تناکه یا دانه چې د څارویو په پښو کې پیدا کېږي؛ ۲) نر. م. آه، ووه، د غوایانو درولو لپاره استعمالېږي.
اوه(۲) (óh) نر. م. د ارمان او افسوس غږ، د تعجب او حیرانتیا کلیمه.
اوهام (awhā́m) نر. ج. (م. وهم) ترس، وېره، ډار، ترهه، وهمونه.
اوهر (awhár) نر. م. ۱) دڅمکي، وېالي، چینې یا

د تیرو هغه چاود ،چې اوبه تري نه راوتلې وي خو بهېدلې نه وي؛ ۲) زېم، نم، نو.

**اوه غله** (owağlá) نر.ج. پېروني، پرېموني، اووه خوېندې، د اسمان هغه اووه ستوري دي چې يو تر بله نيږدې پراته دي.

**اوهو** (ohó) اد. د تعجب او حيرانتيا برغ دی.

**اوي** (awí) ص.نب. ۱) تندوبه ځمکه، تر اوبو لاندې ځمکه؛ ۲) باولي، باوړی، هغه کوهي او کارېز چې په پاولو ورکوزېږي او اوبه تري نه راوړي؛ ۳) جل وهلی؛ ٤) نر.م. يو ډول کندهاري انګور دي؛ ۵) قول، ژبه، لوز، وعده، عهد، ترون.

**اوی** (awáy) ښځ.م.ج. پچه، بچن، هغه ځای چې کلال لوښي په کې پخوي.

**اوی** (oy) ښځ.م. هګی، اګی، اويه، ويبه.

**اويجه** (awijá) ښځ.م. ۱) اوبجه، وبجه، ځمکه، هېواد، اولکه؛ ۲) خاوره، نړی، قلمرو.

**اوير** (awéṛ) نر.م. ګرمي، تفت، تاو، تپت.

**اويل**[۱] (awél) نر.م. هېل، اېل، يېل، لاچي.

**اويل**[۲] (oyál) مص. مت. اوبدل، اودل، اوبل.

**اويلی** (oyaláy) مف. نر.م. اوبلی، اوبدلی.

**اوينه** (oyaná) ښځ.م. اوبنه، اوبدنه، اودنه.

**اويه** (oyá) ښځ.م. (ج. اويې) و ګ. اګی، هګی.

**اه** (ah) نر.م. د افسوس کليمه، اسويلی، اوسېلی.

**اها** (ahā́) هاها، هی هی، اوهو، ايهې، د خوښۍ ښکاره کولو کليمه.

**اهاړ** (ahā́ṛ) نر.م. د اړ مياشت، له پشه کال نه مخکې مياشت.

**اهاک** (ahā́k) نر.م. چونه، اهک، يو ډول کورکانډی دی چې وروسته له ډېر حرارت څخه په چونه بدلېږي.

**اهانت** (ìhā́nat) نر.م. سپکاوی، بې عزتي.

**اهتزاز** (ìhtizā́z) نر.م. رپېدنه، رپږدېدنه.

**اهتمام** (ìhtimā́m) نر.م ۱) همت کول، غمخوري، هاند؛ ۲) بندوبست؛ ۳) د کوم چا له خوا د کتاب په چاپونه کې مراقبت او زيار ايستنه.

**اهدا** (ìhdā́) ښځ.م. ۱) تحفه، سوغات، پېشکش؛ ۲) تحفه کونه، سوغات ورکونه.

**اهداد** (ìhdā́d) نر.م. سزا، ځورونه، رټل.

**اهرام** (ìhrā́m) نر.م. ۱) مخروطي ډوله جسمونه، د هرم جمع - د مصر اهرام.

**اهر** (ahā́ṛ) نر.م. و ګ. اهاړ.

**اهک** (ahák) نر.م. و ګ. اهاک.

**اهل** (ahál) نر.م. خاندان، کورنی، کورمه، عشيره، خپلوان، آل اولاد او د يو ټبر غړي.

**اهلي** (ahlí) ص.نب. کورنی، اېل شوي، روزل شوي.

**اهليت** (ahliyát) نر.م. ورتيا، لياقت، بلديت، د يوه کار د سرته رسولو کفايت او واک لرنه.

**اهميت** (ahmiyát) نر.م. ۱) ارزښت، ګټه، ورتيا، وړوالی؛ ۲) عمده والی، سترتوب.

**اهن ربا** (ahanrobā́) ښځ.م. مقناطيس، مګنيټ، تيږه ده چې اوسپنه او پولاد ځان ته راجذبوي.

**اهنګ** (aháng) نر.م. ۱) اواز، غږ، غاړه، د اواز وزن؛ ۲) تکل، اراده؛ ۳) دود او طريقه.

**اهنګر** (ahìngár) نر.م. لوهار، ګګر، پښ.

**اهوړ** (ahū́ṛ) نر.م. زمانه، قرن.

**اهومن** (ahomán) نريادي، د آه له کليمې نه جوړ صفت دی.

**اهېر** (ahér) نر.م. شپونکی.

**ای** (ay) د ندا توری؛ ۱) د افسوس او تعجب کليمه؛ ۲) او، هی، دلته، دغه؛ ۳) نر.م. شړل، خوشې کول، ايله کول.

**اې** (ae) ند. د ندا توری. او، هو، ها.

ایا (ayā́) اد. د پوښتنې او استفهام کلیمه.
ایاغ (ayā́ğ) نــر. م. کنډول، پیاله، ګېلاس، جــام، کونډۍ، د شرابو جام.
ایالت (ayā́lat) نر.م. عمده سیمه، د سیاسي وېش له پلوه ستره سیمه.
ایام (ayā́m) نر. ج. ورځې، وختونه، موسمونه.
ایبره (ۍbrá) ښځ.م. ۱) فصل، حاصل؛ ۲) پاسره.
ایتلاف (ۍitilā́f) نر.م. یووالی، ائتلاف، د سیاسي ګروپونو او ډلو تړلو مؤقتي یووالی.
ایته (aytá) ښځ. م. هغه انګـور دی، چې اوجــوشې (ابجوشې) ورڅخه جوړوي.
ایجاب (ۍijā́b) نر. م. قبلول، منظورول، غــوښتنه، پرځان منل، د نفي ضد.
ایجاد (ۍijā́d) نــر. م. اختراع، ابتکار، نــوی شی جوړونه، د نوي شي منځ ته راوړنه.
ایځي (ۍiźí) ښځ. م. ۱) هیجا، هــجا؛ ۲) په تکـو ویل، په هیجاوو وینه، په زور او زیر وینه.
ایخ (ۍix) نــر. م. ۱) له خورو څخه د کــرکې کلیمه؛ ۲) د اوښ چوکولو کلیمه، خې خې.
ایخول (ۍixawә́l) مص. مت. چو کول، خیکول.
ایداد (ۍidā́d) نر. م. خوړونه، رټل، سزا، اهداد.
ایدر (ۍidár) نر. م. هما، یو افسانوي مرغه.
ایدک (aydák) نر. م. خیدک، پنیر.
ایر[1] (ۍír) نر. م. ګټه، فایده، حاصل، بوده، سود.
ایر[2] (ۍir) نر. م. د کوچنیانو لوبه.
ایراب (ۍirā́b) نر. م. (ج. ایرابونه) و ګ. اراب.
ایرابه (ۍirā́ba) ښځ. م. ۱) هغه لښتې یا ویاله چې له کښتونو څخه د زیم ایستلو لپاره جوړ شوې وي؛ ۲) په یو وار سره د څو تویکو بار.
ایراد (ۍirā́d) نر. م. ۱) څرګندول، بیانول؛ ۲) ګوته نیول، اعتراض، انتقاد.

ایراو (ۍirā́w) نر. م. د اوبو آخر، د اوبو بیخ.
ایـرب (ۍerә́b) ص. نر. م. کوږ، منحني، مایل.
ایریه لیکه (ۍirabaliká) ښځ. م. کږه لیکه، کږه کرښه، منحني کرښه، مایل خط.
ایړی (ۍirṛáy) ښځ. م. (ج. ایړي) و ګ. اړی.
ایرغه (ۍirğá) ښځ. م. (ج. ایرغې) و ګ. ارغه.
ایرلی (ۍirláy) ښځ. م. د نر اوښ غېږ.
ایرم (ۍirám) نر. م. (ج. ایرمونه) مرجان.
ایرن (ۍirán) ص. نـر. م. ۱) ایروتـه ورتـه؛ ۲) خړ، خړپړ، خړچک.
ایروپز (ۍiropáz) نر. م. ۱) ډارن؛ ۲) بې همته.
ایروپزتوب (ۍiropaztób) نر. م. ۱) وېره، ډار؛ ۲) پستي، بې همتي.
ایروپزي (ۍiropázi) ښځ. م. ۱) بې غیـرتي، بې همتي، پستي؛ ۲) ډارن توب، وېره.
ایره (ۍirá) ښځ. م (ج. ایرې) ییره، د لرګو تر سوځولو وروسته پاتې خاورو ته ورته ماده.
ایره کول (ۍirakawә́l) مص. مت. ۱) په ایرو بدلول، سوځول، سوځل؛ ۲) له منځه وړل.
ایره کېدل (ۍirakedә́l) مص. ل. ۱) سوځېدل، په ایرو بدلېدل؛ ۲) له منځه تلل.
ایره نی (ۍranáy) ښځ. د ایرو اچولو لوښی یا ځای (خاکستردانې).
ایري (ۍirí) ښځ. م. (ج. ایـرۍ) پیغـورونه، د خبرو جنګ، سپکې سپورې خبرې.
ایـر (ۍér) نر. م. د کښتیو یا بحري پوځ یوه ډله، چې د یوه کس تابع وي؛ ۲) قطار، کتار.
ایړا (ۍiṛā́) ص. نب. اوتر، وارخطا.
ایړاو (ۍiṛā́w) نر. م. د ویالو پرغاړه راشنه کېدونکې یو ډول وابښه.
ایـره (ۍerá) ښځ. م. (ج. ایرې) و ګ. وېره.

**ایزګی** (ʔizgí) ښځ.م. (ج. ایزګی) وګ. ازګی.

**ایزوبار** (ʔizobā́r) نر.م. جغ. په جغرافیاوي نقشو کې هغه کرښه ده چې د اتموسفیر د مساوي فشار نقطې سره منښلوي.

**ایژه** (ʔiẓá) ښځ.م. ۱) اوږی، اوګی؛ ۲) دلوېدیځ په تاریخ کې یوه لرغونې سیمه.

**ایږی** (ʔiẓáy) نر.م. (ج. ایږي) ایژه، لیتکی، شونتی، چراغ چوب، بیږې.

**ایږ** (ʔíẓ) نر.م. خرس، میلو، یږ، پژ، هګ، بور.

**ایس** (ʔis) نر.م. اووه، اووهه، دغوایانو د درولو غږ.

**ایسار** (ʔisā́r) ص. نر.م. ج. ۱) تم، ګیر، معطل، ۲) شړل شوی؛ ۳) بندي؛ ٤) مصروف.

**ایسارتیا** (ʔisārtyā́) ښځ.م. (ج. ایسارتیاوې) ۱) ایساربدنه، تم کېدنه؛ ۲) شړنه؛ ۳) بندي کېدنه؛ ٤) مصروفیت.

**ایساربدل** (ʔisāredál) مص. ل. ۱) تمېدل، ګیرېدل، ټالېدل، ګرځېدل؛ ۲) بندي کېدل.

**ایستل** (ʔistál) مص. مت. ۱) باسل، وکښل، خارجول؛ ۲) شړل.

**ایسته کول** (ʔistakawə́l) مص. مت. ۱) ایستل، باسل، وکښل؛ ۲) شړل، بهرکول، لیرې کول؛ ۳) له مخه لیرې کول.

**ایسر** (ʔisə́r) نر.م. آه، زګېروی.

**ایسک** (ʔísk) نر.م. پچه، قرعه، هسک.

**ایسم** (ʔisám) نر.م. جادو، سحر، کوډې.

**ایسمګر** (ʔisamgár) فا. نر.م. (ج. ایسم ګران) جادوګر، سحرګر، کوډګر.

**ایسند** (ʔisánd) ص. نر.م. ظاهر، څرګند، ښکاره.

**ایسوری** (ʔisoráy) نر.م. پېلوښی.

**ایسول** (ʔisawə́l) مص. مت. ښکلې کول، ښایسته کول، ښکاره کول، په ګوته کول، څرګندول.

**ایسې** (ʔisé) ق. یوې خواته، دې خواته، اخواته.

**ایسېدل** (ʔisedə́l) مص. ل. څرګندېدل، بربښېدل، ښه ښکاربدل، په ښکلې ډول معلومېدل.

**اېښ** (ʔeṣ̌) نر.م. (ج. اېښونه) یښل، جوش، خوټ، ښوښ، خوټېدنه.

**ایښله** (ʔiṣ̌ála) ښځ.م (ج. ایښلې) ۱) د ښخونځا، د ښخواتې؛ ۲) شلې، ویښلې، د نرمو اوږو هغه دوړې، چې په غوږو کې په تیغنه پخېږي.

**ایښمه** (ʔiṣ̌má) ښځ.م. (ج. ایښمې) ۱) وږمه، نری باد، الوبښ؛ ۲) هغه ګنه او غړو سکه وربځ چې ژر تېرېږي.

**ایښنا** (ʔiṣ̌nā́) ښځ.م. ۱) یښ، یېښ، جوش، ښوښ، خوټ؛ ۲) تاو، غوسه، درد.

**ایښناو** (ʔiṣ̌nā́w) نر.م. جوش، تاو، ښوښ.

**ایښند** (ʔiṣ̌ánd) ص. نر.م. یښند، جوشېدونکی، خوټېدونکی.

**ایښنده** (ʔiṣ̌andá) ص. ښځ.م. ۱) ګرمه او سخته تبه؛ ۲) نر. ج. شیشنبده، د آس شیشنبده.

**ایښو** (ʔiṣ̌ó) ښځ.م. ای شو، د حسرت، افسوس او تعجب کلیمه.

**اېښول** (ʔeṣ̌awə́l) مص. مت. جوشول، خوټول.

**ایښې** (ʔiṣ̌é) ښځ.ج. ۱) ښې، د کوچنیانو په ژبه غوښې ته وایي؛ ۲) د خره د شړولو آواز.

**اېښېدل** (ʔeṣ̌edə́l) مص. ل. ښوښېدل، جوشېدل، خوټېدل، یښېدل.

**ایښ پیښ** (ʔiṣ̌piṣ̌) ص. نب. حیران، وارخطا، مبهوت، اندېښمن، هک پک.

**ایښندی** (ʔiṣ̌ondáy) نر.م. یو ډول ژیړه مرغۍ ده.

**ایښودل** (ʔiṣ̌ūdə́l) مص. مت. ایښوول، کېښودل، کښېښودل.

**ایښونی** (ʔiṣ̌ūnáy) نر.م. د (جملې) خبر، مُسند.

**ایښوول** (ʔiṣowál) مص. مت. کښېښول، ایښودل.

**ایښی** (ʔiṣáy) نر.م. (د جملې)خبر، فاعلي برخه، مسند الیه.

**ایضاً** (ayzán) بیا، تکرار، عیناً، همداسې، دا رنګه، کټ مټ، د ذکر شوي په څېر.

**ایضاح** (ʔizā́h) نر.م. واضح، څرګندونه، تشریح.

**ابغ** (ʔeǧ) ص. نر. بې شرم، شوخ، بې حیا.

**ابغ بېغ** (ʔeǧbéǧ) ص. نر. شوخ، بې شرم، ابغ نېغ، سرزوری، سپین سترګی، بې حیا.

**ابغر** (ʔeǧár) نر.م. ۱) اینده، مینده، وینده، ساندې، نوآس؛ ۲) زورور، سرتمبه سړی.

**ابغ سترګی** (ʔeǧstárgay) ص. نر.م. بې حیا، شوخ سترګی، سپین سترګی.

**ابغ نېغ** (ʔeǧnéǧ) ص. نر. م. ۱) د خبرې ښښتن، د پاک زړه خاوند؛ ۲) ولاړ؛ ۳) شوخ، سخت.

**ایکاغ** (ʔikā́ǧ) رذیل، چوغلګر، مغولمه.

**ابکونه** (ʔekóna) ښځ. م. کندو، ترټه، د غلې د ساتلو خاورین شی (کندو).

**ایکړ** (ʔikā́ṛ) نر.م. د ځمکې لپاره د اندازه کولو واحد دی چې ۳۶ . ٤ مربع متره کېږي.

**ایکی** (ʔikáy) ښځ. م. و ګ. یکی.

**ابل** (ʔél) ص. نب ۱) تابع، ترحکم لاندې؛ ۲) ساتلی، روږدی؛ ۳) ص. ښځ. م. ټبر، قبیله، کورنۍ؛ ٤) نر.م. لاچي، هېل.

**ابلان** (ʔelā́n) نر.م. ۱) مار، منګور؛ ۲) بې لستونو برکه، بې لستونو چپنه.

**ابلای** (ʔelā́y) نر.م. اطاعت، د ابل له کلیمې نه جوړ مصدر دی.

**ایلبند** (ʔilbánd) نر.م. په یخو ځایو کې د کوچیانو د ګرمۍ د موسم ورشو، سیابند، میله، پوندو.

**ابلچي** (ʔelčí) نر.م. سفیر، ځانګړی استازی.

**ابلڅاروی** (ʔelčārwáy) نر.م. روږدی څاروی، اهلي څاروی.

**ابلغار** (ʔelǧā́r) نر.م. حمله، یرغل، چپاو.

**ابل غبل** (ʔelǧél) نر.م. رام او یاغي، ابل او یاغي، ابلو غبل.

**ابلنه** (ʔelána) نر.م. (ج. ابلنې) وبلنی، پودینه.

**ابلول** (ʔelawál) مص. مت. رامول، تابع کول، په قبضه کې راوستل، روږدي کول.

**ابله** (ʔelá) ص. نب. آزاد، خوشې، خلاص، خوشې شوی، خوشکی، په خپل سر.

**ایله** (ʔilá) ق. ۱) محض، فقط، یوازې؛ ۲) متې، بس، دومره، لږ.

**ایله بیله** (ʔilabíla) ق. ۱) له ایله سره په ملتیا د تاکید مانا ورکوي؛ ۲) کم نه کم؛ ۳) بېکاره.

**ایله په بانه** (ʔilapabā́na) ق. په لږه بانه، په وړه پلمه، په معمولي بانه.

**ایله په بیله** (ʔilapabíla) ق. ایله په ایله، په مټ کې، په متې، په ګرانه، هیله په هیله.

**ایله جاري** (ʔilajā́ri) ښځ. م. ۱) ملېشه، ملېشا، هغه قومي عسکر چې د اړتیا په وخت کې سره تولېږي، اربکی؛ ۲) نامنظمه غونډه.

**ایلی** (ʔiláy) ښځ. م. ۱) هیلی، مرغاوی؛ ۲) ص. ښځ.م. فرمانبرداري، اطاعت،.

**ایلې** (ʔilé) ق. دې خوا، دورې، دلته، دلې، دورې.

**ایلی** (ʔiláy) نر.م. د کوچنیانو لوبه ده.

**ابلېدل** (ʔeledál) مص. ل. رامېدل، تابع کېدل، غاړه کېښودل، حکم منل.

**ایما** (ʔimā́) ښځ.م. ۱) اشاره، کنایه، غمزه؛ ۲) حکم، فرمان؛ ۳) لمسه، د چا په اشاره.

**ایمال** (ʔimā́l) نر.م. (ج. ایمالونه) برف کوچ، د واورې لوی غر، چې راښویږي، ریږ.

**ایمان** (Ɂimā́n) نر.م. عقیده، اعتقاد، باور.

**ایماندار** (Ɂimāndā́r) ص.نر.م ۱) د ایمان خاوند، د عقیدې څښتن، ۲) غیرتی، باارادہ.

**ایماني** (Ɂimā́ni) ص. نب. ۱) د ایمان له مخې، پر ایمان اړوند؛ ۲) ربښتیانی، حقه، سمه.

**ایمن**[1] (Ɂemán) ص.نر.م ۱) امن، پناه، محفوظ؛ ۲) ارام، کرار، د لاسه.

**ایمن**[2] (Ɂemín) ص. نر.م. په شرقي کلاسیکه موسیقۍ کې یو عمده راګ دی.

**ایمن والی** (Ɂemanwā́lay) نر.م.ساتنه، ایمنتوب ،ارامي، ارامتیا، دلاسه والی.

**ایمنول** (Ɂemanawál) مص. مت. ۱) ارامول، دلاسه کول، کرارول؛ ۲) حفاظت کول.

**ایمني** (aymáni) ښځ.م. (ج. ایمنۍ) مړه خېټه، مړښت، خوش قسمتي.

**ایمه** (aymá) ښځ.م(ج.ایمې) اجاره ،دفتر، بوګرۍ، بوګری.

**ایمه دار** (aymadā́r) ص. نر.م. اجاره دار.

**اینجه** (Ɂingá) ښځ. م. ۱) د زړې غوا غوښه؛ ۲) زرزرسا ایستل، تیګا.

**اینچ** (Ɂinč) نر.م. یوه اندازه ده چې اوږدوالی پرې اندازه کېږي.

**اینځر** (Ɂinǰár) نر.م. انجیر، توغو.

**اینداره** (Ɂindára) ښځ.م. هینداره، ایینه، ښیښه.

**ایندرا** (Ɂindrā́) نر. م. په ویدي میتالوجي کې د اندو-آرین رب النوع، دجګړې رب النوع.

**ایندرور** (Ɂindrór) ښځ.م. ندرور، یېندرور، د مېړه خور.

**اینده** (Ɂindá) نر.م. ۱) ورینده، مینده، غوج، انهر، ایغر، ناخصي؛ ۲) ښځ. م. په یوه سا چنبل؛ ۳) د شړشمو په شېر تخم دی چې تېل ترې باسي،جمامه؛ ٤) دیکه، تېله، دیکه.

**اینډه** (Ɂinḍá) ښځ.م. (ج. اینډې) د پښتنو یوه لویه ده، کونۍ کونی، کونلۍ، اندوخر، تتی.

**اینکی** (Ɂinkáy) نر.م. اینګټ، یېنګټ، ینګه، د ناوې د پلار له کوره د وتلو ژړا.

**اېنکی** (Ɂenkáy) نر.م. (ج. اېنکي) د غویو یو راز نسل دی چې زیاتره برګ وي.

**اینګ** (Ɂing) نر.م. د کار مینه، قصد، اراده.

**اینګا** (Ɂingā́) ښځ. م. د نوزېږي ماشوم ژړا.

**اینګه** (Ɂingá) ښځ.م. تونګور، تونګوره، هغه ښځه چې له ناوې سره د زوم کورته ځي.

**اینه** (Ɂiná) ښځ.م.ځیګر، جګر، ینه، ایینه.

**اینړ** (Ɂiṇ) ص. نر.م. ۱) ضعیف، ډنګر، خوار، بې سبکه؛ ۲) نر.م. د خره اڼا، د خره ینګا.

**ایوان** (aywā́n) نر.م ۱) ځناور ،حیوان؛ ۲) ص.نر.م ناپوه؛ ۳) کوچنی هلک؛ ٤) لویه ماڼۍ، لوی سالون؛ ٥) شاهي دربار.

**ایوبوی** (ayobū́y) نر.م. ۱) اکتفا کول، بس ګڼل، مړښت؛ ۲) ص. ن.م. خبر، آګاه، پوه.

**ایوک** (aywk) نر.م. ګزک، د زخم خرابېدنه، نو په کې پیدا کېدنه، زوه.

**ایهام** (Ɂihā́m) نر.م. په بدیع کې یو صنعت دی چې شاعر په خپل کلام کې داسې تکي راوړي چې دوه ماناوې ولري: قریبه او بعیده.

**ایهها** (Ɂihhā́) اد. دخوښۍ اواز، دخوشالۍ کلیمه.

**اې هې** (Ɂehé) ښځ. م. د تعجب او افسوس کلیمه.

**ایېل** (ayél) نر.م. عیال، خېلخانه، ټبر، کورنۍ.

**ایین** (ayín) نر.م. ۱) ژوروالی، عمق؛ ۲) لیاره، مسلک، عقیده، دین.

# ب

**ب** (bé) ښځ.م. (ج. بې ګانې) د پښتو الفبې دريم توری دی. ابجدي ارزښت يې (۲) دی.

**با** (bā́) مخ. ۱) د مختاړې په ډول استعمالېږي لکه با ايمانه؛ ۲) ښځ. م. د وزې او مېږې اواز.

**باب** (bā́b) نر.م. ۱) رواج، دود، دستور؛ ۲) ډول، راز؛ ۳) بابت، په اړه؛ ٤) څپرکی، فصل، د کتاب يوه برخه؛ ٥) عنوان، موضوع؛ ٦) ور، دروازه، دړه.

**بابا** (bābā́) نر.م. ۱) پلار، ابا، دادا؛ ۲) نيکه، ورنيکه؛ ۳) پير، فقير؛ ٤) بوډا، مشر.

**باباجي** (bābā́ji) نر.م. نيکه، غورنيکه، پلار.

**بابامړی** (bābāmáray) نر.م. پلارمړی، نيکه مړی، د ښېراو په ډول هم راځي.

**بابايي** (bābā́yi) ښځ.م. کلانکاري، لويي، تکبر.

**بابت** (bābát) نر.م. ۱) درک، مدرک، ځای، باب، وجه؛ ۲) سبب.

**بابره** (bābará) ښځ. م. يو ډول تريخ بوټی دی.

**بابړزک** (bābaṛzók) نر.م. يو بوټی دی چې بېخ يې د ګازرې په شېر دی.

**بابړنګ** (bābṛáng) نر.م. د سرو مرچو غوندې ترخې او تېزې دانې دي.

**بابړه** (bābáṛa) ښځ. م. (ج. بابړې) ۱) پاپړه، يو ډول تريخ بوټی دی؛ ۲) دوړه، ډوزه.

**بابړی** (bābṛáy) ص. نر. م. (ج. بابړي) ۱) لاپو، ډوزن؛ ۲) د بابړو د قبيلې غړی.

**بابغه** (bābáǧa) ښځ. م. ګونګوشتکه، ببوغه، کوکوکوتره، کتميره، خړه کوتره.

**بابغې نيول** (bābaǧeniwál) مص.ل. ۱) خواري زاري کول؛ ۲) غريبي کول؛ ۳) نېستمنېدل.

**بابک** (bābák) نر.م. ابک، بابا، پلار.

**بابو** (bābū́) نر.م. ۱) بابک، پلار؛ ۲) مامور، ميرزا، ليکونکی.

**بابو**[2] (bābó) ښځ.م (ج. بابوګانې) ۱) ببو، مشره خور؛ ۲) مشرانو ته د درنښت لقب.

**بابوجان** (bābūján) نسر.م. تيتاري، تينتاره، د يوې مرغۍ نوم دی.

**بابوری** (bābū́ray) نر.ج. يو ډول غټ زرد الو دي.

**بابوګوټی** (bābūgoṭáy) نسر.م. (ج. بابوګوټي) ۱) بابوګی؛ ۲) بابو ته سپکاوی کول.

**بابوګی** (bābū́gay) نر.م. و ګ. باباګوټی.

**بابول** (bābawә́l) مص. مت. رواجول، دودول، مشهورول، تيټول، خپرول.

**بابولاله** (bābūlā́la) ښځ. م. د پښتنو يوه سندره ده چې د ناوې د ناوې کولو پر وخت يې وايي.

**بابولالې ويل** (bābūlālewayә́l) مص. مت. اوټې بوټې ويل، بې مانا خبرې کول.

**بابونه**[1] (bābawә́na) ښځ.م. رواجونه، دودنه.

**بابونه**[2] (bābū́na) ښځ.م. (ج. بابونې) يو بوټی دی چې تېل ترې باسي او درمل هم دی.

**بابی** (bā́bay) نر.م. ۱) کشرته د مينې د خطاب کلمه؛ ۲) د پښتنو د بابي قبيلې يو غړی.

**بابي** (bā́bi) ښځ. م ۱) ورينداره، د ورور ښځه؛ ۲) مشرې ښځې ته د احترام په ډول وايي.

**بابۍ** (bābáy) ښځ. م. ج. و ګ. بابي.

**بابېدل** (bābedә́l) مص. ل. رواجېدل، دودېدل، عامېدل.

**بابېرنګ** (bāberáng) نر.م. د ختې د چينجيو د علاج لپاره کارېدونکی بوټی دی.

**بابېړی** (bāberáy) نسر. م. ۱) د ناروغۍ بېرته راګرځېدنه؛ ۲) د حل شوي موضوع بېرته تازه کېدنه؛ ۳) د ټاکلي ولور زياتونه او اخيستنه.

**بابېز** (bābéz) ص. نر. م. بې اهميته، بې ارزښته، معمولي، بې اغېزه، عبث.

**بابېزوالی** (bābezwā́lay) نسر.م. ناڅيزوالی، بې ارزښتوالی.

**بابېزوکی** (bābezū́kay) ص. نر. م. ۱) ناڅيز، بې ارزښته؛ ۲) ډنګر، بته، خوار، نروکی.

**بابېزول** (bābezawә́l) مص. مت. خرابول، بې ارزښته کول، بې اهميته کول، بې اغېزه کول.

**بابېژنه** (bābežána) ښځ. م. (ج. بابېژنې) سره لړې تبه، سره توده تبه، لړزنه تبه.

**باتر** (bā́tar) نر.م. هغه لرګی چې په دېوال کې د هرې پخسې وروسته ورکول کېږي.

**باتريا** (bātaryā́) ص. نب. سوداېي، سرکوډن، سرکاوته، لېونی، اوتر.

**باتور** (bātū́r) نر.م. ۱) د باز د کورنۍ يو ښکاري مرغه دی؛ ۲) توريالی، تورزن، مېړنی، نر؛ ۳) دسترګو تور، د سترګو کسی.

**باتوري** (batū́ri) ښځ.م. توريالیتوب، تورزني، مېړانه، مېړنتوب، تورزني، نرتوب.

**باتی** (bātáy) ښځ.م (ج.باتيانې) ۱) پلته، پليته، د لاتين پلته؛ ۲) هغه پلته چې د قبضيت د لېرې کولو لپاره په مقعد کې اېښودل کېږي؛ ۳) چورېتی، بېتېړی؛ ۴) دېم د لګولو پلته.

**باتېړی** (bātéray) نر.م. مرز، بتېر، وربېز.

**باټ** (bāṭ) نر.م. ۱) د کانې هغه ځرخ چې توره، چاړه وريانده تېره کېږي؛ ۲) د ډزو بار؛ ۳) د نيونو کولو بتي؛ ۴) د طنز او ريشخند په ډول چاپلوس ته ويل کېږي.

**باټاره** (bāṭā́ra) ښځ.م. (ج. باټارې) د اينځر غټه نوې پخه شوې دانه.

**باټر** (bāṭár) ص. نر.م. باټک، باټو، لاپو، غرتن.

**باټول** (bāṭawә́l) مص. مت. ۱) تېره کول، باټ ورکول؛ ۲) لمسول.

**باټون** (bāṭū́n) نر.م. د لاس لرګی، لکړه، امسا، د پولیسو لاسډنډه.

**باټه** (bā́ṭa) ښځ. م. (ج. باټې) لاپه، غوره، ډوزه، دوره، غټه او لویه خبره.

**باټی** (bā́ṭay) نر.م. (ج. باټي) بالټی، کړایي.

**باټینګڼ** (bāṭingā́ṇ) نر.م. و.ګ. باټینګړ.

**باج** (bā́j) نر.م. ۱) خراج، قلنګ، مالیه، د ځمکې محصول؛ ۲) د زردشتیانو یو مذهبي رسم دی: د مذهبي مراسمو د اجرا پر وخت سکوت.

**باجپازی** (bājpā́zay) نر.م. باج ورکوونکی.

**باجري** (bā́jri) ښځ. م.ج. کربړ، کاږ، جغل، شګې.

**باجړ** (bājáṛ) نر.م. ۱) په شپو شپو باران، زورور باران؛ ۲) تالان، چور؛ ۳) ګرېږ.

**باجونکه** (bājonáka) ښځ. م. تورانی، تورانکه، چوغکه، تورکه، یوه تور رنګې مرغۍ ده.

**باجه** (bā́ja) نر.م. (ج. باجه ګان) ۱) ساندو، د ښینې (خیني، خوښیني) مېړه؛ ۲) ښځ.م. ارمونیه، هارمونیم، دګوتو باجه، د ساز او موسیقي یوه آله.

**باچا** (bā́čā) نر.م. واکمن، پاچا؛ ۲) سید.

**باچاخره** (bāčāxrá) ښځ.م. (باچاخرې) باچاګده، یو ډول خړ رنګې خزنده ده.

**باچکه** (bāčáka) ښځ.م. د اوزو یو ډول.

**باچل** (bāčál) نر.م. بایلودنه، بایلنه، بایلات.

**باچایي** (bāčā́yi) ښځ.م. ۱) تولواکي، سلطنت، پادشاهي، پاچاهي؛ ۲) مزې او چرچې.

**باختر** (bāxtár) نر.م. ۱) د لمر لوېدو خوا، لوېدیځ؛ ۲) تا. د آریایانو د لرغوني تمدن مرکز و، چې اوس د بلخ ولایت په نامه یادېږي.

**باختر اژانس** (bāxtarażā́ns) نر.م. د افغانستان د خبر اخیستلو، او خبر رسولو یوه موسسه.

**باخو** (bāxū́) نر.م. ۱) باګو، باګولی، باګره، د اولادونو مور؛ ۲) د کوچنیانو د ویرولو کلیمه.

**باد** (bā́d) نر.م ۱) هوا، ایشمه، لهېږ، دبډونکی شمال؛ ۲) په بدن کې د کومې برخې پاړسوب، قلنج.

**بادار** (bādā́r) نر.م. خاوند، څښتن، ملک، اغا.

**باداري** (bādā́ri) ښځ.م. (ج. باداری) اغاتوب، واکمني، حکمراني، خاني.

**بادام** (bādā́m) نر.م.ج. ۱) یو ډول ونه ده، مېوې ته یې هم بادام وایي؛ ۲) یو ډول چکن دوزي؛ ۲) د ښځو یو ډول ګانه ده.

**بادامچه** (bādā́mča) ښځ.م. ۱) د ګاڼي یو ډول؛ ۲) کښېده کاري، چکن دوزي؛ ۳) غرنی بادام، وروښتی، غوږېشتی.

**بادامه** (bādā́ma) ښځ. م. ۱) سېلی، تېزباد، ګردله؛ ۲) لويي، غرور، کبر.

**بادامي** (bādā́mi) ص. نب. ۱) د بادام په شېر، د بادام په ډول؛ ۲) یو ډول رنګ.

**بادباټي** (badbā́ṭi) ښځ.م. لویې خبرې، لاپې، باټې، ډوزې، دورې، غورې.

**بادبان** (bādbā́n) نر.م. بادوان، په بادي کښتۍ کې ځړول شوي پردو چې د باد استفادې سره د بېړۍ د حرکت سبب ګرځي.

**بادبرک** (bādbárak) نر.م.ج. سپین رنګی بوټی دی.

**بادبېړی** (bādbéṛay) نر.م. بادبان واله بېړۍ.

**بادبېزی** (bādbézay) نر.م. ۱) پکی، ببوزی؛ ۲) بادپکی، بربزی.

**بادبېزي** (bādbézi) ښځ.م. (ج. بادبېزۍ) چتې او بې مانا خبرې، چتیات، بې ګټې خبرې.

**بادپښی** (bādpáṣay) فا. نر.م. متی، ګرندی، ګرندی تلونکی، چابک، توند، وندی.

**بادپکه** (bādpáka) ښځ.م. و ګ. بادبېزی.

**بادجړی** (bādjaṛáv) ښځ.م. ۱) جکړ؛ ۲) څول؛ ۳) هغه واوره چې باد راغونډه کړې وي.

**باد خور** (bādxór) نر.م. ۱) بادخورک، باښې ته ورته یو ډول مرغه دئ؛ ۲) د اسونو یوه ناروغي ده؛ ۳) هغه څوک چې تود سوړ شوی وي.

**بادخوره** (bādxóra) ښځ.م. ۱) دپوټکي ناروغي؛ ۲) پرسوب؛ ۳) دسیفلیس وروستی مرحله.

**بادخوري** (bādxóri) ښځ.م. (ج. بادخورې) د اسونو یو ډول ناروغي ده.

**بادر** (bādár) ص. نر.م. ۱) توریالی، مېړنی؛ ۲) نر.م. دسلواغي له پنځلسمې د کب تر پنځلسمې پورې وخت.

**بادرب** (bādráb) نر.م. و ګ. بادجړی.

**بادرو** (۱) (bādró) ښځ.م. په پشکال پسې موسمي میاشت.

**بادرو** (۲) (bādráw) نر.م. کړکۍ، روزان، مورۍ، دریڅه، سوری، کولک.

**بادري** (bādári) ښځ.م. (ج. بادرۍ) مېړانه، توریالیتوب، مېړنتوب، زړورتیا.

**بادرۍ** (bādaráy) ښځ.م. ج. مډال، مډال، د توریالیتوب او مېړانې نښان.

**باد سر** (bādsár) ص. نر.م. (ج. بادسري) سرسام، بادسار، کوسر، سرکوته.

**بادسنج** (bādsánj) نر.م. باد مېچ، ۱) انیمومیټر، د باد د فشار دسنجولو آله؛ ۲) خام تمه، متکبر.

**بادشاه** (bādšā) نر.م. و ګ. باچا.

**بادغېږ** (bādǧéz) نر.م. بادرو، کولک، دریڅه، درڅه، دروڅه.

**بادفرنګ** (bādifaráng) نر.م. ۱) سره مخه؛ ۲) اتشک، سیفلیس.

**بادکښ** (bādkáṣ) نر.م. و ګ. بادرو ۱.

**بادکویه** (bādkóya) ښځ.م. د باد په واسطه له مړې او وچې واورې څخه سورې سورې جوړېدل، د واورې د شینډل کېدلو حالت.

**بادګوله** (bādgóla) ښځ.م. د قولنجو ناروغي.

**بادله** (bādlá) ښځ.م. د بنارس یو ډول ټوکر.

**بادماتی** (bādmātáy) بادماتوونی.

**بادمنګ** (bādmáng) ص. نر.م. چلت، ګړندی، تېز، وندی، متی، چابک.

**بادمېچ** (bādméč) نر.م. و ګ. باد سنج.

**بادنجان** (bādanjān) نر.نب. رومي بانجان، توربانجان، سوسني بانجان.

**بادوان** (bādwān) نر.م. و ګ. بادبان.

**بادوکی** (bādūkay) نر.م (ج. بادوکي) ۱) بادګین، بادګیر، باد ک؛ ۲) ص. نر.م. ناپوه، ساده، بربړو؛ ۳) لته، ګوډاګی.

**بادول** (bādawál) مص. مت. ۱) باد ورکول، هوا ورکول؛ ۲) لونل، غله پورته غورځول؛ ۳) بد خرڅي کول؛ ٤) باتې وهل.

**باد وهلی** (bādwahálay) ص. نر.م. ۱) پاګل؛ ۲) بې مغزه، اوتر، بادساری، سرکوته.

**باده** (bāda) ښځ.م. شراب، می، سهبا.

**بادهوا** (bādhawā) ښځ.م. ګوډۍ، ګوډیپران، بادیوه، بادیوه، کاغذ پران.

**بادي** (bādi) ص. نب. ۱) بادجن، بادګین، باد ک؛ ۲) د بادجنو خوړو خوړل؛ ۳) څوک چې درمندونه پاکوي؛ ٤) یو ډول اوبش دی؛ ٥) هغه شیز چې له هوا نه ډک وي؛ ٦) دروا مجنون. لاپو.

**باديښ** (bādiṣ) نر.م. بادرو، کولک.

**بادي کول** (bādikawál) مص. مت. اوبش ګړندی کول.

بادي کېدل (bādikedə́l) مص. ل. باد وهل، د باد په واسطه د غنم اوريشې دانې پوچېدل.

باديګين (bādigán) نر.م. و.ګ. بادهوا.

باديمن (bādimán) ص. نر.م. ج. ۱) پرسېدلی؛ ۲) مغرور.

باډاسکه (baḍáska) ښځ.م. (ج. باډاسکې) څپه، چپه، بانډاسکه، موج.

باډاسکې (bāḍāske) ښځ.ج. پټ پټونکی، پټ پټانی، د کوچنيانو يو ډول لوبه ده.

باډاسکې وهل (bāḍāskewahə́l) مص. ل. څپې وهل، چپې وهل، موجونه وهل.

باډر (bāḍár) نر.م. سرحد.

باډګول (bāḍgól) نر.م. ۱) رسی، مضبوط پړی؛ ۲) د آس تيسری؛ ۳) قبضه، لرمونې.

باډنګ (bāḍáng) نر.م ۱) بادرنګ؛ ۲) ص. نر.م. بې عقل، ناپوه.

باډو (bāḍū́) ص. نب. ۱) بې عقله، ناپوه؛ ۲) بې همته، سست، دروغجن، لاپو.

باډول (bāḍól) نر.م. چايجوش، کېټلی، چاجوش.

باډی (bāḍáy) ښځ.م. بدن، وجود، تنه، ادانه، باډی (لکه د موټر).

بار (bā́r) نر.م. ۱) وری، څټه؛ ۲) پېتی، هغه پېتی چې په اوښ، خره يا ... باندې ورل کېږي؛ ۳) تحميل؛ ٤) دېنې حاصل؛ ٥) شرابخانه، ميخانه؛ ٦) تکت، ميزان، بارلاين.

باران (bārā́n) نر.م. شيګېره، وريا، ورښت.

بارانکوټ (bārā́nkoṭ) نر.م. و.ګ. باراني.

بارانګی (barā́ngay) نر.م. ترلبه، تروه، شولنګ، پرخک باران، کمزوری باران، ښورمک.

باراني (bārā́ni) ص. نب. ۱) ورندی وخت، هغه موسم چې د بېر باران اورېږي؛ ۲) هغه څمکه چې په باران اوبېږي.

بارانی (bārānáy) ښځ.م. ۱) للمي څمکه؛ ۲) برساتي، د باران څانګړی کوټ.

باربار (bārbā́r) ق. وار وار، بيا بيا، څو واره، په کراتو مراتو، څو څله، څو کرته.

باربېليز (bārbéliz) نر.م. ۱) بې خاونده او بې څښتنه؛ ۲) بې مېره او بې سرپرسته.

باربېليزه (bārbelíza) ښځ.م. ۱) بې مېره او بېکسه ښځه؛ ۲) وچه ښځه، شنډه ښځه.

بارجامه (bārjā́ma) ښځ.م. (ج. بارجامې) هغه څه چې بار په کې ترل کېږي.

بارچالاني (bārčalā́ni) ښځ.م. بارلېږدونه، بار استونه، د بارد روانېدو اجازه ورکونه.

بارچلند (bārčalánd) نر.م. بارچالاني، باربري، حمل ونقل.

بارچوی (bārčáway) نر.م. د ژرندې د څرخ د منځ لرګی.

بارڅاک (bārcā́k) نرم. (ج. بارڅاکونه) شلېدلی کميس، څيرې لمن.

بارخو (bārxū́) نر.م. (ج. بارخوګان) اننګی، غومبوری، رخسار، غمبوری، بارخو.

باردار (bārdā́r) ص. نر.م. ۱) باروالا؛ ۲) مېوه لرونکی.

بارداره (bārdā́ra) ص. ښځ.م ۱) اميدواره، حامله، بلاربه؛ ۲) مېوه لرونکې.

بارداري (bārdā́ri) ښځ.م. ۱) د ورلو راوړلو سامان؛ ۲) د سامان ورلو وسيله.

بارسوخ (bārusū́x) ص. نر.م. بانفوذه سړی، د اعتبار خاوند، مخور، سپين روبی.

بارز (bā́riz) ص. نر.م. جوت، څرګند، ښکاره.

بارک (bārák) نر.م. (ج. بارکونه) د پوځيانو د

ليليې يوه برخه، د پوڅيانو استوګنځی.

**بارکښ** (bārkáṣ) ص. نـر.م. ۱) باروړونکی؛ ۲) پنډي، جـوالي؛ ۳) زيارکـښ؛ ٤) د سـرې سينې خاوند، حوصله لرونکی.

**بارکښي** (bárkaṣi) ښځ.م (ج. بارکښۍ) باروړونه، بارلېږدونه، بارچلونه.

**بارګاډی** (bārgáḍay) ص. نـر.م. بارلاری، مال ګاډی.

**بارګاه** (bārgáh) ښـځ.م. ۱) دربار، محل، د پاچا ماڼۍ، باچاهي خېمه؛ ۲) سپېڅلی ځای.

**بارګير** (bárgir) نـر.م. باروړونکی، هغه څاروی چې بار وړي.

**بارنامه** (bārnáma) ښـځ.م. چيټۍ، د تجـارتي مالونو فهرست او ښرنګوالی.

**بارنيول** (bārniwál) مـص. ل. ۱) مېـوه داره ونه په بار راتلل؛ ۲) په ګېډه کېدل.

**باروت** (bārút) نـر.ج: بـارود، د ټوپک دارو، دارو ويشتونکي وسلې انفلاقي مواد.

**باروتخانه** (bārūtxána) ښـځ.م. د بـاروتو ګـودام، هغه ځای چې باروت په کې ساتل کېږي.

**باروړونکی** (bārwrúnkay) فا.نـر.م. نقليه، د بار وړ لو وسيله، د حمل ونقل وسيله.

**باروګراف** (bārográf) نر.م. فشار سنجوونکی، هغه آله چې د هوا فشار ښرګندوي.

**بارول** (bārawál) مـص. مت. بار وربانديې اچـول، ورې وربانديې اچول، بار وربانديې اړول.

**بارومېټر** (bārometár) نر.م. و ګ. باروګراف.

**باره** (bára) ښـځ. م. ۱) لـوی بند؛ ۲) د تيـرو دېوال، د تيـرو غټه پوله؛ ۳) ډېـري او کـوټه تيـږې، دلې شوې تيږې؛ ٤) اد. باب، اره، په برخـه؛ ۲) پلا، ځل، وار.

**باري** (bári) نـر.م. ۱) لوی ښښتن تعالی؛ ۲) ص. نب. مېوه کوونکې ونه؛ ۳) نر.م. رافعه، اړم، د اوسپنې جبل.

**بارۍ** (bāráy) ښځ.م ۱) د پياز پرده، د پياز پوټکی؛ ۲) له باز نه لږ وړوکی يو ښکاري مرغه دی.

**بارياب** (bāryáb) ص. م. ج. ۱) اجـازه مـوندلی، اجـازه ورکـړې شوی؛ ۲) درا کمن حضـور ته ورغلی.

**باړېدل** (bāredál) مص. ل. حمل کېدل، مال په بار وړونکـو بانديې اچـول کـېدل؛ ۲) لـېږدېدل، کوچېدل، کډه تلل.

**باريک** (bárik) ص. نر.م. نری، ډېرنری، نازک.

**باريک بين** (bārikbín) ص. نـر.م. ځيرک، پوه، هوښيار، ځير.

**باريکي** (báriki) ښـځ.م. (ج. باريکۍ) نازکي، نزاکت، راز، سر، پټه مانا؛ ۲) نری والی.

**باړ** (báṛ) نر.م. (ج. باړونه) ۱) باټ، ډېډې، شليک؛ ۲) باړه، وباړه، انګړ، د پټې انګـړ، خمبې يا تاو شوی اغزن مزی.

**باړخو** (bāṛxú) نر.م (ج. باړخوګان) باړخه، بارخو، اننګی، غومبری، رخسار.

**باړک** (bāṛák) نر.م. (ج. باړکونه) يوه ونه ده چې سکاره ترې جوړوي.

**باړل** (bāṛál) نر.م. ګټه او فايده رسول.

**باړواک** (bāṛwák) ص.نر.م. بې فکره، بې هوښه، بې پروا، ناخبر، بروا.

**باړه** (bāṛá) ښځ. م. ۱) اجوره، کرايه؛ ۲) ونډه لکه کونجاړه، پندانه، بېږه، بوس؛ ۳) ښځ.م. ج. ښې او اعلی درجه نری وريجې دي.

**باړه کول** (bāṛakawál) مص. مت. کـرايه کـول، اجاره کول، په کرايه ورکول.

**بارى** (bāṛay) نر.م. (ج. بارى) مزد ، اجوره.

**باري** (bāṛi) نر.م. (ج. باريان) خدمتگار ، نوکر ، مزدور ، کارگر ، اجير ، مستخدم.

**باړۍ** (bāṛáy) ښځ. م. ج. ١) کورسره نږدې د کر ځمکه او باغچه؛ ٢) ډله ، ټولي ، ټولنه.

**باړېزوال** (bāṛezwā́l) نر.م. هغه سړی چې د باړېز (ماشيندار) مشر وي.

**باړيزه تپانچه** (bāṛizatapā́nča) ښځ. م. تپانچه چې د ډېر کارتوس په لږ وخت کې ويشتلی شي.

**باړي مار** (bāṛimār) ص.نر.م. (ج. باړي ماران) ١) بډې خور ، رشوت خور؛ ٢) اجير.

**باړينچغ** (bāṛinčág) نر.م. بانيچغ ، بانيچق ، غنجلی ، د کوچنيانو لوبه.

**باز** (bā́z) نر.م. يو تکړه ښکاري مرغه دی چې کېږه منبوکه او غښتلې پنجې لري.

**بازار** (bāzā́r) نر.م. د اخيستلو او خرڅولو ځای.

**بازارگی** (bāzā́rgay) نر.م. بازارگوټی ، کوچنی بازار ، بازارگنکی.

**بازاري** (bāzā́ri) ص. نر.م. د بازار اوسېدونکی ، هغه څوک چې د بازار تر څنگه استوگنه لري.

**بازدار** (bāzdā́r) نر.م. و گ. بازوان.

**بازگوټی** (bāzgóṭay) نر.م (ج. بازگوټي) وړوکی باز ، کوچنی باز ، ورکوټی باز.

**بازل** (bāzál) مص. مت. ١) بايلول ، بايلودل؛ ٢) خرڅول ، لگول؛ ٣) په جواری بايلل.

**بازلی** (bāzálay) مف.نر.م. ١) بايلودلی ، بايللی؛ ٢) لگولی؛ ٣) له لاسه تللی.

**بازنامه** (bāznā́ma) ښځ.م. د بازونو په اړه د خوشال خان خټک يو اثر دی.

**بازو** (bāzū́) نر.م. ١) مټ؛ ٢) ارخښی ، وږخښی ، د کټ د څلورو اړخونو د لرگو يو لرگی؛ ٣) د کلا د څلورو ډېوالونو يو ډېوال.

**بازوان** (bāzwā́n) نر.م. هغه څوک چې بازان ساتي ، په بازونو ښکار کوي.

**بازوبند** (bāzū́band) نر.م. پسول يا په څرمن کې گنډلی تعويذ چې پر مټ تړل کېږي.

**بازوگی** (bāzū́gay) نر.م. (ج. بازوگي) ١) وړو باز ، ډکټ لنډ بازو؛ ٢) د کلا کوچنی او لنډکی ډېوال.

**بازونکی** (bāzū́nkay) فا. نر.م. (ج. بازونکي) ١) بايلونکی؛ ٢) خرڅوونکی ، مصرفوونکی.

**بازي** (bā́zi) ښځ.م (ج. بازی) ١) لوبه؛ ٢) دوکه ، چل ول؛ ٣) داو ، قمار.

**بازيچه** (bāzíča) ښځ. م. ١) هر هغه شيز چې لوبې ورباندې کېږي؛ ٢) د بل د لاس آله.

**بازيگر** (bāzigár) ص.نر.م ١) بازينگر ، گډېدونکی ٢) مداري؛ ٣) ټگ؛ ٤) بې اصوله؛ ٥) دوه ژبی ، دوه مخی؛ ٦) لوبغاړی ، هېرو ، اکټر.

**بازيگري** (bāzigári) ښځ. م ١) ټگي ، مداريتوب ، دوکه بازي؛ ٢) نخا ، گډا.

**باس** (bā́s) نر.م. ١) ټټی ، خاک انداز ، بيت الخلا؛ ٢) بوی؛ ٣) ص. نر.م. بم ، د زير ضد د ټرېل ضد؛ ٢) د هارمونيک په موسيقي کې کښتنی برخه.

**باسار** (bāsā́r) ص. نر.م. ١) باک سار ، سرسام ، بادسار ، سودايي؛ ٢) لېونی.

**باسل** (bāsál) مص. مت. ايستل ، ويستل ، شړل ، خارجول ، کښل ، توجه کول.

**باسل** (bā́sil) نر.م. بيا. د بکتريا گانو يو ډول مايکروسکوپي او يو سلولي ژوی دی.

**باسمه** (bāsmá) ښځ. م. (ج. باسمې) يو ډول زژي توکر دی ، چې پردې ترې جوړوي.

**باسواد** (bāsiwā́d) ص. نسر.م. باسواده، لوستی، تعلیم یافته.

**باسورجن** (bāsūrján) ص. نسر.م. مست اوښ، بوربورو اوښ، لیونی اوښ، اړیمار اوښ.

**باسوري** (bāsū́ri) ښځ.م. بانسوری، فلوټ، د موسیقۍ یوه آله ده.

**باسي** (bā́si) ص. نب. ۱) پاتې شوني، شومانده.

**باشي** (bā́ši) نسر.م. د یوې ډلې مستخدمینو او کارګرانو مشر.

**باښ** (bā́ṣ) ص. نر.م. هغه آس چې څلور واړه پښې یې سپینې او تندی یې سپین خاپ ولري.

**باښه** (bā́ṣa) ښځ.م. یو ښکاري مرغه دی.

**باښه ګی** (bāṣagáy) ښځ.م. بمبیرک، د پتنګانو یو ډول.

**باښین** (bā́ṣin) نر.م. یو ډول الوتونکی دی.

**باطل** (bā́til) ص. نسر.م. ۱) بابیز، ناروا، ناڅیز، ناحق؛ ۲) بیهوده، بې ګټې، پوچ.

**باطلول** (bātilawál) مص.مت. ردول، حق نه ګڼل، کوره کول، بې ارزښته کول.

**باطن** (bā́tin) ص. نر.م. ج. پټ، دننه.

**باطني** (bātíni) ص. نب. دننه، پټ، په زړه کې.

**باعث** (bā́sis) نسر.م. ۱) وجه، سبب، علت؛ ۲) فا.نر.م. اصرار کوونکی، ټینګار کوونکی.

**باعثتیا** (bāsistyā́) ښځ.م. ټینګښدنه، ټینګار کونه، اصرار کونه، ټینګښده، تاکید.

**باعث کېدل** (bāsiskedál) مص.ل. ټینګېدل، کلکېدل، محکمېدل.

**باعظمته** (bāsazmáta) ص. نب. ۱) پرتمین، لوی، درونډ، باوقاره؛ ۲) مشر، عزتمند.

**باعمله** (bāsamála) ص. نب. نېک عمله، یقین کوونکی، عقیده لرونکی، د عمل خاوند.

**باغ** (bā́ğ) نر.م. بڼ، د ځمکې هغه ټوټه چې زیاتره میوه لرونکې ونې او بوټې ولري.

**باغ باړی** (bāğbā́ṛay) ص. نسر.م. بساغ باغ، ډېر خوشاله، په جامو کې نه ځاییدنه.

**باغچه** (bā́ğča) ښځ.م(ج. باغچې) بڼګی، جنګی، وړوکی باغ، باغ ګوټی.

**باغکه** (bāğáka) ښځ.م. ۱) یو مارغه دی چې برګ وزرونه لري؛ ۲) یو ډول اسماني رنګه کانی دی چې کوچنیان یې رولي (تشلې) ورڅخه جوړوي.

**باغلي** (bā́ğli) نر.ج. باقلي، باغولي.

**باغو** (bāğū́) نر.م. ۱) د کوچنیانو یو ډول ناروغي ده؛ ۲) پیشپرانګ، پیشپرانګی.

**باغ والا** (bāğwālā́) نر.م. د باغ خاوند.

**باغوان** (bāğwā́n) نا. نر.م. مالیار، مالي، بڼوال.

**باغوټ** (bāğū́t) نسر.م. ۱) باغوټی، بوغوټ، کله چرک؛ ۲) انجیره.

**باغي** (bā́ği) ص. نب. ۱) د باغ ځمکه؛ ۲) یاغي، بغاوت کوونکی؛ ۳) د باغ فصل.

**باغیرته** (bāğayráta) ص. نب. غیرتي، میړنی.

**باقاعده** (bāqā́sida) ص. نب. منظم، اصولي، برابر، سم، له قاعدې سره سم.

**باقي** (bā́qi) ص. نب. ۱) پاتې، پاتې کېدونکی، بقایا؛ ۲) نور.

**باقی** (bāqáy) ښځ.ج. ۱) کانګې، قی، استفراق، استفراغ؛ ۲) د باقي جمعه.

**باقیدار** (bāqidā́r) ص. نسر.م. ۱) هغه څوک چې باقي وربانديې پاتې وي؛ ۲) پوروړی.

**باقیداري** (bāqidā́ri) ښځ.م. باقي کېدنه.

**باک** (bā́k) نر.م. ۱) پروا؛ ۲) وېره، ډار؛ ۳) تاوان؛ ۴) په خوست کې د یوې ولسوالۍ نوم دی.

**باکره** (bākırá) ص. ښځ. م. پېغله، بچړه، هغه جلۍ چې پېغلتوب او بکارت يې ساتلی وي.

**باکفايته** (bākıfāyáta) ص. نب. لايق، هوښيار، وړ، استعداد والا، تکړه.

**باکماله** (bākamā́la) ص. نب. کسبي، کسبګر، د کمال خاوند، تخصص والا.

**باکو** (bākū́) نر. م. مشر ورور.

**باکوکړ** (bākūkáṛ) نر. م. ساراني چرګ، کوکړ.

**باکه ساري** (bākasā́ray) نر. م. هغه پسه، چې ښکرونه يې واړه وي او په وريو کې ښکاري.

**باګرام** (bāgrā́m) نر. م. د پېښور پخوانی نوم.

**باګره** (bāgrá) ښځ. م. تور، بلا، باګو، باخو، باګولی، د ويرې يو خيالي څيز.

**باګه** (bā́ga) ښځ. م. ۱) لاپه، باته؛ ۲) لاس بری.

**بالاپوښ** (bālā́poṣ) نر. م. غټ کوټ، بالاپوش.

**بالاحصار** (bālāhisā́r) نر. م. په لوړ ځای جوړه شوې عسکري کلا.

**بالاخانه** (bālāxā́na) ښځ. م. مانۍ، د دوهم پوړ کوټه، دکوټې د پاسه کوټه.

**بالاخره** (bılāxırá) ق. لنډه دا چې، په پای کې، په اخير کې، پای ته.

**بال بال** (bālbā́l) ص. نر. م. خوشال، په طبعه، انج و منج، باغ باغ، باغ باړی.

**بال بچ** (bā́lbač) نر. م. واړه زيړه، واړه زاړه، کورنۍ، ښځه او اولاد، کورمه.

**بالبکی** (bālbákay) نر. م. ړبی، ښېړبکی، پتنګ.

**بالبوزک** (bālbozák) نر. م. يو غرنی بوټی، غرنی تراتېزک، يو ډول شنه سابه دي.

**بالتی** (bāltáy) ښځ. م. ۱) بالتي ستل؛ ۲) تاتکی، هغه فلزي لوښي چې ختې او ... په کې وړل کېږي ۳) دقروانې د وړلو لوښی.

**بالښت** (bālást) نر. م. سروېړدی، بالين، تکيه، ډډړی، ګډوزی، سري، سروښت.

**بالښتک** (bālaṣták) نر. م. ۱) بالښتی، وړوکی بالښت؛ ۲) هغه اوږد لرګي چې د کبانو د نيولو د چچې يوه اړخ ته يې ږدي.

**بالغ** (bā́lig) ص. نر. م. نوی ځوان ژنی، پيلستی، ځوانی ته رسېدلی، نوی زلمی.

**بالفرض** (bılfárz) ق. فرضاً، د اټکل له مخې، د ګومان له مخې، د تخمين له مخې.

**بالفعل** (bilfiʕl) ق. په عملي ډول، په عمل کې، د يوه عمل د کولو په وخت کې.

**بالکل** (bilkul) ق. بېخي، تماماً، په بشپړه توګه، په ټوله مانا، له هره اړخه، په يقيني سره.

**بالکه** (bālká) ښځ. م. نلی، دروی، نلکی، دچلم دورمه يا نل، درمه.

**بالکه چي** (bālkáči) نر. م. خدمتګار، بالکی، نوکر، د فقير شاګرد.

**بالکی** (bā́lkay) نر. م. شاګرد، نوکر، خادم، ورکوټی نوکرګی.

**بالمثل** (bılmısl) ق. په څېر، غوندې، ورته، په ډول، په هماغه ډول.

**بالمقابل** (bılmuqā́bıl) ق. په ځواب کې، په بدل کې، په عوض کې، په مقابل کې.

**بالنګ** (bāláng) نر. م. (ج. بالنګان) توک نارنج، يو ډول نارنج دی.

**بالڼ** (bāláṇ) نر. م. ۱) خاشاک، خس، خځله؛ ۲) يو ډول قورمه.

**بالو** (bālū́) نر. م. (ج. بالوګان) يږه، ميلو، خرس، يږ، يو ځيروونکی ځناور.

**بالون** (bālū́n) نر. م. يوه لويه ګردې کڅوړه چې له سپکو غازونو (هايډروجن، هيليوم) څخه

د کېږي او هوا ته پورته کېږي.

**بالۍ** (bāláy) ښځ.م. والۍ، لښتۍ، دغوږو منډرۍ، دغوږو يو ډول ګاڼه ده.

**باليوس** (bālyós) نر.م. دکندهار لرغونی نوم.

**بام** (bā́m) نر.م. (ج. بامونه) د کوټې سر، بلې.

**بامبره** (bāmbára) ښځ.م. (ج. بامبرې) مچۍ، غومبسه، ډمبره.

**بامبړ** (bāmbáṛ) نر.م. بامبېړی، پنډت، برهمن، بامبڼ، د هندوانو مذهبي مشر.

**بامبړه** (bāmbáṛa) ښځ.م. (ج. بامبړې) د اوږ لمبه، د اور غورځنجه، د اور غوړيشه.

**بامبو** (bāmbū́) نر.م. ۱) د مچيو او بامبرو ښځار؛ ۲) د ښارويو ګڼې رمباړې؛ ۳) بانس.

**بامبېړ** (bāmbéṛ) نر.م. ۱) شور، بامبڼ، ځوږ، شورماشور؛ ۲) ورنده لانجه.

**بامبېلکۍ** (bāmbélkay) نر.م. پرپره کی، ډبی، تاروګی، بانک، بمبېړی، پتنګ.

**بامره** (bā́mra) ښځ.م. دخولې غاړه، د خولې مخه، د خولې پيڅه، د خولې چنه.

**بامل** (bāmál) مص. ل. د خپلو پالل، اشنايي پالل، ملګرتيا پالل، پالنه.

**بامنه** (bāmána) ښځ.م. (ج. بامنې) د دوستانه اړيکو ټينګونه، د دوستۍ پالنه او ساتنه.

**بامڼه** (bāmáṇa) ښځ.م. (ج. بامڼې) شنه لوخړه، غروسکه لوګی، لوخړه، ډېر او ګڼ لوګی.

**بامونکی** (bāmū́nkay) فا. نر م. آشنايي پالونکی، ملګرتيا پالونکی.

**بامه** (bā́ma) ښځ.م. د ژمي پای، د ژمي وروستۍ ورځې چې پېشوګانې مستېږي.

**باميال** (bāmyā́l) نر.م. لد. پالوال، مهربان.

**بان** (bā́n) نر.م. و ګ. بوڼ.

**بانجو** (bānjū́) نر.م. کوکری، اتيون، کوتری، کونګری، نوی زېږېدلی کوکری.

**باڼو** (bāṇó) ښځ. م. عسکري ارکيستر.

**باڼرو** (bāṇráw) نر.م. ګلدار کميس.

**بانده** (bā́nda) ښځ.م. ۱) تړون، تيږه، قرارداد، ناغه؛ قومي جرمانه؛ ۲) قومي پابندي.

**باندې** (bāndé) ق. ۱) د پاسه، پورته، پاس، پر، په؛ ۲) په ذمه، ورپورې.

**باندې کول** (bāndekawál) مص. مت. بارول، نګولی د پخلي لپاره په نغري اېښودل.

**باندېنی** (bāndénay) ص. نر.م. ۱) پاسنی، پرباندې، مافوق؛ ۲) بهرنی، خارجي.

**باڼد** (bā́ṇd) نر.م ۱) لاتري، لاټرۍ، پچه؛ ۲) تړون، ضمانت خط؛ ۳) ډله، دسته.

**باڼدار** (bāṇdā́r) نر.م. مجلس، راټولېدنه، ټولی، غونډه، جرګه، بنډار.

**باڼده** (bāṇdá) ښځ.م. مېنه، د مالدارانو خپلو ښارويو سره په غره کې د اوړي تېرولو ځای.

**باڼده ګی** (bāṇdagáy) ښځ.م. ج. کوچنۍ بانده، وړه ميله، هغه بانده چې لږ ښاروي لري.

**باڼده چي** (bā́ṇdači) ص. نر.م. باڼده وال، د باندې اوسېدونکی..

**باڼده وال** (bāṇdawā́l) ص. نر.م. ۱) د باڼدې سری؛ ۲) د باڼدې خاوند.

**باڼدېسی** (bāṇdésay) نر.م ۱) باڼده چي؛ ۲) هغه شپون چې ځای پر ځای رمې پيايي.

**بانک** (bā́nk) نر.م. هغه شخصي يا دولتي ځای چې خلک په کې خپلې پيسې يا زېورات ساتي.

**بانکداري** (bānkdā́ri) ښځ.م. (ج. بانکدارۍ) بانکي چارې، په بانک پورې تړلې مسالې.

**بانکه** (bānka) ښځ.م. (ج. بانکې) ۱) پایزیب، بانکه؛ ۲) نر.م. ډولي هلک، ښیښني ځوان.

**بانګ** (bāng) نر.م. ۱) بڼغ، غږ، اواز، کوکاره؛ ۲) دلمانځه اذان؛ ۳) د چرګ اواز.

**بانګوری** (bāngūray) نر.م. (ج. بانګوري) ۱) هغه چرګوری چې نوی په اذان راغلی وي؛ ۲) انبور، امبور، پلاس.

**بانګي** (bāngi) نر.م. (ج. بانګیان) ۱) نرچرګ. بانګیتی؛ ۲) مؤذن، اذان کوونکی.

**بانګی** (bāngay) نب. م. ج. د اوبو چلولو چنګک (کونډې) والا لرګي.

**بانو** (bānū) نر.م. ۱) ماکو، مانک، بې لښي مچی؛ ۲) دمنډتو او زردالو یو ډول دی؛ ۳) ښځ.م. مېرمن. بي بي.

**بانه** (bāna) ښځ.م. پلمه، حیله، عذر، بهانه.

**باني** (bāni) ص. نب. موسس. تاداو ایښودونکی، بنسټ ایښوونکی.

**بانېګر** (bānegar) ص. نر.م. بانه جوړوونکی، پلمه کوونکی، په کارونو کې حیله کوونکی.

**بانین** (bānin) نر.م. شاهین، یو ښکاري مرغه دی.

**باڼ** (bāṇ) نر.م. ۱) وګ. بڼو؛ ۲) لوښینی، بڼ، دودي، لامده اوړه په اوبو کې حل کوي او ښوروا ته د ټینګولو لپاره وراچول کېږي.

**باڼوکه** (bāṇoka) ص. نب. مست او نېشه سری یا ښځه، خماره ښځه یا خمار سری.

**باڼه** (bāṇa) نر.م. ج. برڼه، د سترګو د زېزمونه چار چاپېر ویښته.

**باڼي** (bāṇi) ښځ.م. هغه آله ده چې د هغې په ذریعه له خرمنې نه رسی غزل (تاوول) کېږي.

**باڼیچغ** (bāṇičag) نر.م. وګ. بارینچغ.

**باڼیاز** (bāṇyāz) نر.م. بنیاګر، حلاف، هتیوال.

**باو** (bāw) نر.م. ۱) د اتشک ناروغي، باد فرنګ، سفلیس؛ ۲) پمنوالی، سوزکی؛ ۳) بیه، نرخ.

**باور** (bāwar) نر.م. اعتبار، یقین، اعتماد.

**باورچي** (bāwarči) ص. نر.م. ۱) قاصد، ایلچي؛ ۲) باوري، معتمد؛ ۳) نر.م. باورچي، اشپز.

**باورچي خانه** (bāwarčixāna) ښځ.م. پخلنځی، اشپزخانه.

**باوررای** (bāwarrāy) ښځ.م. باور رایه، د اعتماد رأیه.

**باورلیک** (bāwarlik) نر.م. اعتماد پاڼه، اعتماد نامه.

**باوري** (bāwari) ص. نب. اعتباري، اعتمادي، معتمد، د اعتبار وړ، د باور وړ.

**باوړی** (bāwaṛay) ښځ.م. ۱) السوره سطحه، جګ اوار ځای؛ ۲) لویه ځای؛ ۳) ړیګی، باولی.

**باولل** (bāwlal) مص. مت. باولي ورکول، باز، باښه یا سپی د ښکار کولو لپاره روزل.

**باوله** (bāwla) ص. نب. بوله، بې فکره، بې عقله، کم عقل، ساده، ناپوه، اوتر بوتر.

**باولی** (bāwlay) ص. نر.م. ۱) هغه څوک چې زړور او د کار وړ نه وي خو ځان زړور او پوه ښیي؛ ۲) باز او باښه په ښکار روږدي کول.

**باولي** (bāwli) نر.م. ښکاري سپي، باز او باښې ته د ښکار نیولو د چل ښودلو میدان.

**باولی** (bāwlāy) ښځ.م. هغه لار یا زینه چې ښاه یا کاربز ته ښکته ورغلې وي.

**باوو** (bāwū) نر.م. (ج. باووګان) باهو، د ښځو یو ډول پسول چې په مروند کوي یې.

**باوي** (bāwi) ص. نر.م. د باو ناروغ، په باو اخته.

**باوېړی** (bāweṛay) نر.م. (ج. باوېړي) بابېړی، د ناروغتیا بېرته ګرځېدنه.

**باهو** (bāhū́) نر.م. (ج. باهوگان) وگ. باوو.

**بای** (bā́y) نرم. بایلل، بایلودل.

**باید** (bāyád) ق. ۱) بایده، هرومرو، ضرور، حتمي؛ ۲) مناسب، په ځای، له دود سره سم.

**بایسکوب** (bāyskób) نر.م. سینما، دفلم دښودلو ځای.

**بایکاټ** (bāykáṭ) نر.م. تعلق پرېښودل، اړیکه پرېکول، له غم ښادۍ نه وېستل.

**بایکړ** (bā́ykáṛ) نر.م. پلپونه، پلمن، یوه غرنۍ ونه چې لرگي یې د مسواک لپاره کارېږي.

**بایلات** (bāylā́t) نر.م. ۱) بایلودنه، تاوان، زیان؛ ۲) پرکېدنه، ملامت کېدنه، خړ کېدنه.

**بایلل** (bāylál) مص. مت. بایلودل، بای کول، له لاسه ورکول.

**بایلوول** (bāylowál) مص. مت. بایلل.

**بایوال** (bāywā́l) ص. نر.م. ۱) شریک، شریکار؛ ۲) په کاروبار کې ملگری.

**ببر** (bābár) نر.م ۱) هغه زمری چې په غاړه او اوږو یې لوی ویښته وي؛ ۲) ص. نر.م. گڼ او اوږد ویښته سری؛ ۲) قهرجن؛ ۳) گڼ، گور.

**ببرستنی** (babarstánay) نر.م. (ج. ببرستني) یو ډول انگرېزی توپک دی.

**ببرسری** (babársaray) نر.م. گگرسری، بیتل.

**ببرغوږی** (babargwáẓay) نر.م. ۱) غوږور توپک، ۳۰۳ بور توپک؛ ۲) د ببرو غوږو خاوند

**ببرو** (babrū́) ص. نر.م. بدرنگ سری، د تریو تندي خاوند، د توري تندې څښتن.

**ببروزه** (babróza) ښځ.م. بروزه، یو ډول واښه دي.

**ببرول** (abaráwal) مص. مت. ۱) د سر ویښتان لویول، ویښته گډوډ کول؛ ۲) څوک لمسول او په غوسه کول.

**ببری** (babráy) نر.م. ۱) یو ډول ښکاري سپی دی؛ ۲) کشمالی، ریحان، نازبو، بوبری.

**ببرېدل** (babaredál) مص. ل. ۱) ببرکېدل، گنېدل؛ ۲) پارېدل؛ ۳) پرېشانه کېدل، گډوډېدل.

**ببغی** (babáğay) ص. نر.م. (ج. ببغي) غریب، بدمرغه، بې وزلی، بې وسه، عاجز، خوار.

**ببکی** (babákay) نر.م. لاپې، ځان ښودنه، څوک (خصوصاً کوچنیان) گواښل.

**ببو** (babáw) نر.م. بلا، شېخې، باخو، د ماشومانو دډارولو کلیمه.

**ببوتتی** (babotátay) نر.م. ملاچرگک، گوډی چرگ، بابوکی، ملاوتوتک.

**ببوزی** (babózay) نر.م (ج. ببوزي) ۱) پکه، پکی، بادپکی؛ ۲) کب خورک، یو ډول مرغۍ ده.

**ببوغه** (babū́ğa) ښځ.م. (ج. ببوغې) خره کوتره، گوگوشتو، ببوغې، بابغه، کتېره.

**ببی** (babáy) نر.م. (ج. ببي) یو ډول مارغه دی چې چینجي خوري.

**ببۍ** (babáy) ښځ.م. (ج. ببۍ گانې) مشره خور، ترور یا بلې مشرې ښځې ته د احترام کلیمه.

**ببېزنه** (babézna) ښځ.م. (ج. ببېزنې) لړزه تبه، سره توده تبه، شیبره تبه، سره لړې تبه.

**ببېښی** (babéṣay) نر.م. (ج. ببېښي) بواسیر.

**ببېښي** (babéṣi) ص. نر.م. بواسیري، هغه څوک چې په بواسیرو اخته وي.

**بت**(۱) (bát) نر.م. ۱) د کانو دېوال، د څاه، کارېز، لښتې د تیرو ویره؛ ۲) اړ، مایه، کلف، اها، بتې، پان، هغه اوړه چې توکرانو ته د شخولو لپاره ورکول کېږي.

**بت**(۲) (bū́t) نر.م. (ج. بتان) ۱) مجسمه؛ ۲) تصویر؛ ۳) مجازاً معشوقه.

**بتاره** (batā́ra) ښځ.م. (ج. بتارې) گرز، د پهلواني جنگي وسله.

**بت پرست** (butparást) ص. نر.م. د بت عبادت کوونکی، بت ته سجده کوونکی، مشرک.

**بت تراش** (but tarā́š) نر.م. د بتانو جوړوونکی، بت ساز، مجسمه جوړوونکی.

**بت تون** (buttū́n) نر.م. بتخانه.

**بتخانه** (butxā́na) ښځ.م. (ج. بتخانې) بت تون، د بتانو ځای، د مشرکانو د عبادت کولو ځای.

**بتخک** (batxák) نر.م. (ج. بتخکان) بتیرغزی، غزه، یو ډول خړ رنگه مارغه.

**بتر** (batár) ص. نر.م. ډېر خراب، ډېر بد، بېکاره، بې خونده، بدتر.

**بتري** (batári) ښځ.م. (ج. بترۍ) خرابي، بدتري، بدتروالی، بتروالی.

**بتک** (baták) نر.م. پتک، پتکی، بتکی، د اوبو ورلو لوښی.

**بتکده** (butkáda) ښځ.م. بتخانه.

**بتکه** (batáka) ښځ.م. (ج. بتکې) بته، پتکه، د هیلیو د کورنۍ یو ډول.

**بتکی** (butkáy) نر.م. ۱) ورروکی دېوال؛ ۲) د ختو یوه کمکۍ توپۍ؛ ۳) له کوټې سره نیږدې لرگی چې سامان وربانديي خوړند وي.

**بتکۍ** (batkáy) ښځ.م. بیتلۍ، ام پـه، کـورکی، د زرکو او نورو مرغیو نیولو آله.

**بتله** (batála) ښځ.م. (ج. بتلې) پتکه، هغه چرگه چې لومړی ځل په هگیو اچولو راغلې وي.

**بتلۍ** (batláy) ښځ.م. بیتلۍ، بتکۍ، د زرکو د نیولو یو ډول خاصه اله.

**بتوله** (batóla) ښځ.م. په ښکار پسې د ښکاري مرغه د ورخوشې کولو چل.

**بته** (۱) (báta) ښځ.م. ۱) قاز، بتکه، یو ډول هیلۍ ده؛ ۲) ص. نب. نرۍ، ډنگر، کمزوری، خوار.

**بته** (۲) (butá) ښځ.م. یو ډول سکوی، د کنبیدو یو ډول، د خامکدوزۍ یو ډول دی.

**بتي** (báti) ښځ.م. ۱) هغه نرم اوړه چې جولاگان یې تنستې ته ورکوي؛ ۲) ناکرلې شودیاره ځمکه؛ ۳) ص.نب. سلامت، پوره؛ ٤) ښځ.م.ج. ژاولکۍ حلوا، سونک، په غوړوکې ایشېدلې گوره.

**بټ** (báṭ) نر.م ۱) بټی، د نینو کولو بټۍ؛ ۲) دخښتو پخولو داش؛ ۳) تبۍ؛ ٤) د توپک کونداغ؛ ٥) د تاپر چاودېدنه؛ ٦) ص. نر.م. تود، گرم؛ ٧) غیب ویونکی، کاهن.

**بټا** (baṭā́) نر.م. خوک چې په یوه سترگه ړوند وي او د سترگې گاتۍ یې ړاوتلې وي.

**بټ بېديا** (baṭbedyā́) وگ. بټي بیابان.

**بټ سترگی** (baṭstárgay) نر.م. ړدی، چغر، بټک، ړد سترگی، ټغ سترگی.

**بټ سوره** (baṭsū́ra) ښځ.م. (ج. بټ سورې) دل، شالا، خیږه اوړه، لواړ اوره.

**بټ سوری** (baṭsū́ray) نر.م ۱) خځوزی، زږی، ډډوډی میده گي؛ ۲) سیکه سي، د اوړو سبوس ۳) گونډی، دروخه، تر درمند پاکولو وروسته ناتکېدلي وړي.

**بټل** (baṭál) نر.م. ۱) د نسوارو او بنگو میده کولو لوښی؛ ۲) خاوری، تولگی، خاورینه پیاله، لوی کنډولی، خاورینه کاسه.

**بټلی** (baṭálay) نر.م. (ج. بټلي) د خاورو کنډول، کنډولی، خاوری.

**بټن** (baṭə́n) ښځ.م. (ج. بټنې) ۱) بټنه، دکمیس تنۍ؛ ۲) سوېچ.

**بټنګ** (baṭáng) نر.م. (ج. بټنګان) د نشپاتۍ او ناک غونډې يو ډول مېوه ده.

**بټول** (baṭowál) مص. مت. د پوستکي پزوهل، له وزې نه د څرمنې د ايستو لپاره د لکۍ سره د څرمنې څه برخه څيرې کول.

**بټوه** (baṭwá) ښځ.م. جېبي بکس، د پيسو ساتلو کڅوره.

**بټه** (báṭa) ښځ.م. ۱) غټې وريجې چې نرمې پخې شوې وي، شلغم بټه؛ ۲) ص. ښځ.م. غټه ګوته.

**بټې** (baṭé) ښځ.ج. لـه بغرۍ نه وتلې اوريشې، تکېدلې اوريشې.

**بټۍ** (baṭáy) ښځ.م. ۱) کوره، داش، دچونې، لوښو او خښتو پخولو ځای؛ ۲) هغه ښځه چې د يوې سترګې ګاتې يې بوټ راوتلی وي.

**بټي** (báṭi) ښځ.م. د اوريشو اوبه.

**بټې بيابان** (baṭebyābắn) نر.م. وچه دښته، وچ ډاګ، وچه ميره.

**بټياری** (baṭyắray) نر.م. (ج. بټياري، بټياران) ۱) بټۍ والا، نينې کوونکی؛ ۲) تنوروالـه.

**بټېر** (baṭér) نر.م. مرز، يوه مرغۍ ده.

**بج**[1] (buj) نـر.م. (ج. بجـان) زړی يا تخـم لکـه د هندوانې يا ختکي.

**بج**[2] (báj) نر.م. ۱) لوی کوټک، د اوبو د بـار ترلو لرګی؛ ۲) د لوشلو په وخت د شېدود دارو اواز؛ ۳) هلې ځلې، منډې ترړې؛ ٤) دلرګي هغه ځای چې واينو خوړلی وي.

**بجد** (bajád) نر.م. ټينګ ولاړ، محکم، اړم.

**بجرګی** (bajárgay) نر.م. (ج. بجرګي) ۱) يو ډول شين بوټی دی؛ ۲) بامبوټی.

**بجړ** (bajáṛ) نر.م ۱) نرښځې، ايجړا؛ ۲) ګنه کورمه، ګڼه کورنی، غټه کورنی.

**بجړا** (bujṛá) ص. نب. تنبل، لټ، بېکاره.

**بجړانګي** (bujṛắngi) ښځ.ج. زړې او شکېدلې جامې، تيړانګې جامې.

**بجغ** (bjắğ) نر.م. بنجغې، بنجمخې، د کـروندې شا وخوا د لرګيو دېوال.

**بجل** (bujul) ښځ.م. (ج. بجلې) ۱) سپينه بډۍ؛ ۲) ښنګری، بجلکه، د پښې ګيټۍ.

**بجلي** (bijli) ښځ.م. (ج. بجلۍ) برېښنا، برق.

**بجن** (bjắn) ص. نـر.م. ج. ۱) سپېړن، هغه څـوک چې سپېړې په کې شوې وي؛ ۲) و ګ. بهجن.

**بجنتوب** (bjantób) نر.م. سپېړنتوب، سپېړنوالی.

**بجه** (bája) ښځ.م.ب ۱) هارمـونيه، د ساز يو ډول اله ده؛ ۲) ښـځ.م. ساعت، د يـوې ګېنټې برابر وخت؛ ۳) سپېره؛ ٤) ماشوره، شوره، کشکوری، هغه وابنه، چې سوری ورباندې بندېږي.

**بجی** (bajáy) ښځ. م. د کوچنيانو په ژبه (تی).

**بجی څټه** (bajaycắṭa) ښـځ.م. د اوبو د بـار سرباری.

**بچ** (báč) نر.م. ۱) ګڼ تېغونه، د کښت يا ونو ګڼ تيغونه راوتل؛ ۲) دېروالي، زېړنده؛ ۳) ساتنه، ګوښه کېدنه، روغ پاتې کېدنه.

**بچاو** (bačắw) نر.م. ساتنه، حفاظت، ژغورل.

**بچاوڼ** (bačāwáṇ) نـر.م. لـويه سترنجۍ، لويه درۍ، لوی فرش.

**بچاونه** (bičāwaṇá) ښـځ. م. (ج. بچـاونې) ښـه درۍ، ښه بستره، ښه فرش.

**بچاوول** (bačāwawál) مص. مـت. سـاتل، پناه ورکول.

**بچاوی** (bačắway) نر.م. (ج. بچاوي) بچ کېدنه، له څه مصيبت نه بچ کېدنه.

**بچاوېدل** (bačāwedál) مص. ل. بچ کېدل، ژغورل کېدل، ساتل کېدل.

**بچت** (bacát, bcát) نر.م. سپما ،پس انداز.

**بچت کول** (bacatkáwǝl) مص. مت. ذخیره کول، پس انداز کول، سپما کول.

**بچری** (bacáray) نر.م. ۱) بچکری، دمتروکې د سر څورندی، د غوا دلکۍ د ویښتو څورندی؛ ۲) کوتی، کوتانی، کوچانی.

**بچړی** (bacṛáy) نر.م. (ج. بچړي) بچی، بچونی، زوی، اولاد، بچوړی.

**بچک** (bacák) نر.م. ۱) مېرات، میرا، میراو؛ ۲) بچگی، بچگی، د تمباکو له گل سره نېږدې وړې پاڼې؛ ۳) دښخود سر دواړو خواو ته څوړند وېښته.

**بچکری** (bačkáray) نر.م. (ج. بچکري) د متروکې د سرڅوړندی.

**بچکرکی** (bačkarákay) نر.م. د مرغیو د دام چوکۍ (چوککه)، د مرغیو د دام موړی.

**بچو** (bačú) نر.م. زویکه، بچیه، زویه، زامنه، زوی ته د مینې خطاب.

**بچوړي** (bačúṛi) نر.م. (ج. بچوړي) لوپې اوږدې جرابې.

**بچوړی** (bačúṛay) نر.م. د انسان، مرغه یا حیوان وړوکی بچی.

**بچوکی** (bačúkay) نر.م ۱) د متروکې د سر څونډی، د پنې د سر شوکه؛ ۲) د سر د ویښتانو د تړلو پیپکی (بچوی یا پیوی).

**بچول** (bačawǝ́l) مص. مت. ژغورل، ساتل، گوښه کول، نجات ورکول، خلاصول.

**بچونګړی** (bačungáṛy) نر.م. (ج. بچونګړي) بچوړی د انسان یا حیوان وړوکی بچی.

**بچوی** (bačáway) نر.م. پیپکی، پیوی، پیوکی، د ویښتو تړلو چړی.

**بچه** (báča) ښځ.م. اچه، اچې، د وزې شړلو اواز.

**بچه گرو** (bačagráw) نر.م. څرموني، څرمنی، هغه موسم، چې زړه غله خلاصه شوې وي او نوې غله نه وي رسېدلې.

**بچه گوته** (bačagwáta) ښځ.م. کنځه گوته، د وړې او منځومې گوتې ترمنځ گوته.

**بچی** (báčay) نر.م. (ج. بچي، بچیان) زویک، کوچنوټی، کمکی، وړوکی.

**بچی** (bačáy) ښځ.م ۱) وره لور؛ ۲) د دېوال پښتې؛ ۳) دغوا، مېښې کټی؛ ٤) چرگوری.

**بچي بچي** (bačibači) نر.ج. کچې کچې، درې درې، د مېږو او وزو د رابللو خاص غږ.

**بچېړی** (bačéray) نر.م. (ج. بچېړي) د آس بیهان، د آس بچی.

**بځن** (bajan) نر.م. حریص، اروا وړی، اتیرلی، اتیرن.

**بڅخکی** (bucxákay) ښځ.م. بخڅکی، بخڅی، بخچی، دسمال یا کڅوړه چې ښځې په کې ستن، تار او ... ږدي.

**بڅرکی** (bacárkay) نر.م (ج. بڅرکي) ۱) سپنکی، سپرغی، د اور بڅری؛ ۲) خڅوڅکی، ذره.

**بڅه** (báca) ښځ.م. (ج. بڅې) بېڅه، یو دول شنه غرني وابنه دي.

**بحث** (báhc) نر.م. (ج. بحثونه) ۱) کره س، شور، مناقشه، مناظره؛ ۲) موضوع.

**بحر** (báhr) نر.م. ۱) سمندر، دریاب؛ ۲) د شعر وزن. ۳) لوی پوه، لوی عالم.

**بحران** (buhrán) نر.م. گډوډي، نازک حالات.

**بحراني** (buhráni) ص. ن. بحران ته منسوب؛ بې نظمه، گډوډ.

**بحروبر** (bahróbar) نر.م. نری، وچه او لنده، وچه او اوبه.

**بحري** (báhri) ص. نب. سمندري، هغه شه چې بحر سره اړیکه لري یا په بحر کې وي.
**بحریه** (bahriyá) ص. ښځ. م. ۱) هرڅه چې بحر ته منسوب وي؛ ۲) سمندري، تجارتي، جنګي بېړۍ او څواک.
**بحیره** (bahíra) ښځ. م. سمندرګی، هغه اوبه چې شا و خوا یې وچه وي.
**بخار** (buxā́r) نر. م. ۱) تبخیت، بړاس؛ ۲) خارښت، په بدن ورې دانې راختل؛ ۳) تبه.
**بخارۍ** (buxāráy) ښځ. م. انګیټۍ، تودلۍ، د خونو د تودولو فلزي اله.
**بخت** (báxt) نر. م. (ج. بختونه) قسمت، نصیب، برخه، طالع، پاره، مرغه.
**بخت ازمېښت** (baxazmḗşt) نر. م. بخت ازماینه.
**بختر** (baxtár) نر. م. له کلک پېړ توکرنه جوړ پوښ چې پخوا به د زغرې په څېر اغوستل کېده.
**بختور** (baxtawár) ص. نر. م. بختیار، نېکمرغه، بخت لرونکی، نېکبخت، طالعمند.
**بختیالی** (baxtyā́lay) نر. م. بختور، نېکمرغه.
**بخچه** (boxčá) ښځ. م. (ج. بخچې) و. ګ. بڅڅه.
**بخڅه** (boxcá) ښځ. م. (ج. بخڅې) و. ګ. بخچه.
**بخشش** (báxšiš) نر. م. انعام، جایزه، ورکړه، یو شی چاته په وړیا توګه ورکول.
**بخښل** (baxşál) مص. مت. ۱) ښښل، معاف کول؛ ۲) یو شی چاته په وړیا توګه ورکول.
**بخښو** (baxşó) (پخښو، پښو) خلاص، آزاد، آرام او خوشاله.
**بخل** (buxál) نر. م. بخیلي، کروټي، ممسکي.
**بخمل** (baxmál) نر. م. مخمل، یو ډول توکردی.
**بخملۍ** (baxmaláy) ښځ. م. پیشوګی، پشی، لړمی، د کښېتونو یو ډول چینجی.
**بخملي** (baxmáli) نر. م. ۱) یو ډول سور رنګی چینجی چې الوځي؛ ۲) یو بخملي رنګه مارغه چې د شپې له خوا چغېږي.
**بخن** (baxán) ور. دغه زرزستاړی د ورته مانا لري او له رنګونو سره راځي – سوربخن.
**بخن بخن** (baxanbaxán) نر. م. ج. رنګارنګ، ډول ډول.
**بخوړی** (baxóṛay) نر. م. (ج. بخوړي) ۱) ډډی، د بوسو خوسی؛ ۲) خیالي بلا.
**بخول** (baxwál) نر. م. ۱) د زړه پرده؛ ۲) زوېرګی، د برزیات فریاد.
**بخوله** (baxwála) ښځ. م. (ج. بخولې) ۱) تیګا، ستم، تیګه؛ ۲) بده پېښه، غمجنه پېښه.
**بخۍ** (baxáy) ښځ. م. ج. بخیه، د ستنې تکونه.
**بخیل** (báxıl) ص. نر. م. ممسک، سوګت، شوم.
**بد** (bád) ص. نر. م. خراب، خوشې، ناکاره، چټې.
**بداروا** (badārwā́) ص. نب. حریص، وږسترګی، لېسک، اروا وږی.
**بدبوړی** (badbóṛay) نر. م. ترینګلی، د بوټ وربوز خاوند، د تریو تندي خاوند.
**بدپوری** (badpóray) نر. م. هغه پوروړی چې پور پر خپل وخت نه سپاري، بد معامله.
**بدبین** (badbín) ص. نر. م. ۱) د چا په نظر هر شی بد ښکاربدل؛ ۲) مخالف، دښمن.
**بد پوره** (badpóra) ص. نب. بدپوری، بدمعامله.
**بدتمیز** (badtámız) ص. نر. م. ج. بې ادبه، بې ډبه، بې تمیزه، بې تهذیبه.
**بدجوله** (badjáwla) ص. نب. بدشکله، بدرنګ.
**بدچلند** (badčáland) ص. نر. م. بدچلنده، بد معامله، څوک چې ښه ګوزاره نه کوي.
**بدحال** (badhā́l) نر. م. بد روزګار، بده ورځ، سپېره

. توب، خراب حالت، مشکلات، کډوډ ژوند.

**بدحاله** (badhā́la) ص. نب. بې حاله، هغه څوک چې حال یې خراب وي.

**بدخرڅی** (badxárcay) ص. نر.م. مسرف، غیر مقتصد، څوک چې بې ځایه لګښت کوي.

**بدخصلت** (badxislát) ص. نر.م. بدخوی.

**بدخلق** (badxūlq) ص. نر.م. بدخویه، پوچ خولی.

**بدخواه** (badxwā́h) ص. نب. مخالف، دښمن.

**بدخولی** (badxū́lay) ص. نر.م. بدژبی، تونډ ژبی.

**بدخوري** (badxóri) سوء تغذي.

**بدخویي** (badxū́yi) ښځ.م. بدخلقي، بدخصلتي، خراب خوی خصلت، خراب عادت.

**بد دیانت** (baddiyā́nat) ص. نر.م. ۱) تېګ، خیانت کوونکی؛ ۲) بې ایمانه، بې عقیدې.

**بد ډوله** (baddáwla) ص. نب. ۱) بدشکله، بدرنګه؛ ۲) بې موده، له مودې وتلی.

**بدذات** (badzā́t) ص. نر.م. کم ذات، کم اصل.

**بدر** (badár) نر.م. سپېدار، چنار، څنار، چینار.

**بدرکانی** (badarkā́ṇay) نر.م. بیکانه، بوکانه، بوکیانه، د اکاسي په څېر یوه ونه ده.

**بدرګه** (badrága) ښځ.م. ۱) بدرقه، ملګرتیا، مشایعت؛ ۲) لاربښوونه؛ ۳) په مړي پسې د لومړی ورځې خیرات.

**بدرګی** (badrágay) ص. نر.م (ج. بدرګي) بد اصل، کم اصل، رذیل، بې شرفه، خطا.

**بدرنګ** (badráng) ص. نر.م. بدقواره، بې ډوله.

**بدرنګي** (badrángi) ښځ.م. ۱) بدشکلي، خرابه جثه؛ ۲) د زماني پېر، خراب حالت؛ ٤) سپکاوي، بې عزتي.

**بدره** (bádra) ښځ.م. (ج. بدرې) چابکه، شپیاکه، تپی، هغه خوشایي چې شپیاکه شوی وي.

**بدري** (bádri) ښځ.م. (ج. بدرۍ) ۱) تیندک، ټکر، ګنګس؛ ۲) بده پېښه، تاوان، زیان؛ ۳) نر.م. منافقت، دوه مختوب؛

**بدري بټېره** (būdribaṭéra) ښځ.م. سور سترګې او سور منبوکې مرغه (بهښه).

**بدریزه** (badrizá) ښځ.م. سربانده، بدریزه، سربانه، سرباني.

**بدړ** (badár) نر.م. ۱) سپین ولی؛ ۲) سپېدار.

**بدړبنګ** (badárbang) نر.م. د قوي نشې لرونکی بنګ.

**بدزړی** (badzáray) ص. نر.م. بد نیته، کینه کښ، کینه ګر، بغضي، حاسد.

**بد ژبان** (badzabā́n) ص. نر.م. سپور ژبی، ستغ ژبی، پوچ خولی، د ترخې ژبې خاوند.

**بدږغ** (badẓā́ğ) نر.م. خراب غږ، ناولی غږ.

**بدږغه** (badẓā́ğa) ښځ.م. (ج. بدږغې) هغه ښځه چې اولاد یې زیان کړی وي یا د زېږېدو په وخت کې مړ شوی وي.

**بدږغی** (badẓā́ğay) ص. نر.م. (ج. بدږغي) بد اوازی، بدږغه، د خراب اواز لرونکی.

**بد سترګی** (badstárgay) ص. نر.م. ۱) بې حیا، سپین سترګی، بې شرم؛ ۲) نظرباز.

**بد سری** (badsáray) ص.نر.م ۱) مغرور، کبرجن؛ ۲) کم عقل، بې تمیزه.

**بدسلوک** (badsulū́k) ص. نر.م. بدچلند، بد ګوزاره، بد سلوکه.

**بدسولي** (badsū́li) ص. ښځ.م. و ګ. بد اروا.

**بدشاګوم** (badšāgū́m) ص. نر.م. ۱) بدبخت، بې طالع؛ ۲) نر.م. بدنصیب، خراب بخت.

**بدعت** (bidsát) نر.م. ۱) نوېتوب، نویوالی؛ ۲) په دین کې نوی شی پیدا کول.

**بدعمل** ( badʂamál ) ص. نر.م. بدعمله، بدکاره، ورانکار، لوچک، بدکار.

**بدعهد** ( badʂáhad ) ص. نر.م. بې قوله، بې لوزه، بې ژبې.

**بدغونځ** ( badğúnʒ ) نر.م. د ځنګلي ونې دانه.

**بدغونی** ( badğúnay ) ص.نر.م. (ج. بدغوني) بدمخی، بدشکل، بې ډوله، بدرنګ.

**بدفعله** ( badfiʂlá ) ص. نب. ورانکار، بدچاری، بدعمله، بدکاری، بداخلاقه.

**بدقسمت** ( badqismát ) ص. نر.م. بدقسمته، بدنصیب، بدشام، بدبخت.

**بدکار** ( badkấr ) ص. نر.م. بدعمله، بدفعله.

**بدکردار** ( badkirdấr )ص.نر.م. بدعمله، بداخلاقه، دنېکۍ دښمن، بدخویه.

**بدګذران** ( badguzrấn ) ص.نر.م. ۱)بدګوزاره، بدسلوک؛ ۲)د بدې اقتصادي وضعې لرونکی.

**بدګړه** ( badgáɽa ) ښځ.م. بدي، دښمني، بدګڼه.

**بدګڼه** ( badgáṇa ) بدی، د ښېګڼې ضد.

**بدګوښنی** ( badgóšánay ) ص. نر.م. سپېره مخی، بدرنګ، بدقواره، بدشکله.

**بدګومان** ( badgūmấn ) ص. نر.م. ج. بدګومانه، شکي، شکمن.

**بدګویي** ( badgóyi ) ښځ.م. (ج. بدګویۍ) پوچې خبرې، پوچه او سپکه وینا.

**بدل** ( badál ) نر.م. ۱)عوض، غچ، تاوان؛ ۲) بدلېده ۳)جعلي، ناچل؛ ٤)سندرغاړی؛ ٥)یو ولسی دود دی چې خور ولور بې ولوره یو بل ته ورکوي یا لور د زوی لپاره په بدل ورکوي.

**بدلاری** ( badlấray ) ص. نر.م. ۱) بې لارې، په غلطه لار روان؛ ۲) مجازاً بدمرغه.

**بدلاري** ( badlấri ) ښځ.م. (ج. بدلارۍ) بې لارې، بې اصولي، بدفعلي.

**بدلامی** ( badlấmay ) ص. نر.م. بدعمله، بې لارې، بدنام، تومتي.

**بدلبوله** ( badalbóla ) ښځ.م. مشاعره.

**بدل زن** ( badalzán ) ص.نر.م. سندرغاړی، بدلې ویونکی، سندرې ویونکی.

**بدلغامه** ( badlağấma ) ص.ښځ.م. کچنۍ، رنډۍ، فاحشه، بدکاره، ګډۍ.

**بدلګام** ( badli(a)gấm ) سرکښ اس، کنایه له باغي او سرکښ انسان شخه.

**بدلمنه** ( badlamána ) ښځ.م. وګ. بدلغامه.

**بدل مېچ** ( badalmeč̌ ) نر.م. ۱)د شعر وزن لکه هجایي او عروضي اوزان؛ ۲) عروض.

**بدل مېڅ** ( badalméc ) نر.م. وګ. بدل مېچ.

**بدلول** ( badlawál ) مص.مت.عوض معاوضه کول، تبدیلول، یو شی په بل شي ورکول.

**بدلون** ( badlűn ) نر.م. ۱) معاوضه، الیشونه، بدلونه؛ ۲) تحول.

**بدلوښی** ( badlóşay )نر.م. بدخویه، بدمزاجه.

**بدله**(۱) ( badála ) ښځ.م. (ج. بدلې) ۱)وګ. بدل؛ ۲)د پښتو د ولسي شعر یو ځانګړی فورم دی خو په عام ډول سندره، لنډۍ، ټپه، غاړه، نیمکۍ، د بدلې په نامه یادېږي.

**بدله**(۲) ( bádla ) ښځ.م. انتقام، غچ، بدل.

**بدلېدل** ( badledál ) مص.ل. الیشېدل، تبدیلېدل، له یوه ځای نه د چا پر ځای بل ځای کې مقررېدل.

**بدمخی** ( badmáxay ) نر.م. ۱)بدرنګ، بدصورت، بدشکله؛ ۲)بې لحاظه، بې شرم.

**بدمخي** ( badmáxi ) ښځ.م. (ج. بدمخۍ) سپین سترګي، بې لحاظي، بې شرمي، بې حیایي.

**بدمذهب** (badmazhab) ص. نر.م. بې لارې، لارورکی، په مذهب نه پابند.

**بدمرغه** (badmárğa) ص. نب. بدبخت، بې طالع، بدقسمت، بدنصیب.

**بدمزاج** (badmizáj) ص. نر.م. ۱) قهرندونکی، بدخویه؛ ۲) دماغي، کلاتکار، مغرور.

**بدمزه** (badmáza) ښځ.م. بې مزې، بې خونده.

**بدمست** (badmást) ص. نر.م. ۱) هغه شوک چې د بر نېشه وي؛ ۲) بې ځایه او بې مورده مست.

**بدمعاش** (badmaáš) ص. نر.م. بدماش، ورانکاری، بداخلاق، بداخلاقه، لوچک.

**بدمعامله** (badmuāmála) ص. نب. تګ، ککړ، بې باوره، بد پوره، دوکه مار.

**بدموری** (badmóray) ص. نر.م. (ج. بدموري) ازاري، پساتي؛ ۲) بدشکله، بدصورته.

**بدن** (badán) نر.م. وجود، تن، تنه، جثه، ځان.

**بدنام** (badnām) ص. نر.ج. تومتي، تورن.

**بدناموسي** (badnāmósi) ښځ.م. بې پتي، بې حیایي، بې غیرتي، بې ننګي.

**بدنامول** (badnāmawál) مص. مت. تومتي کول، رسوا کول، تور پرې لګول، شرمول.

**بدنامي** (badnāmi) ښځ.م. (ج. بدنامی) رسوایي، تور، الزام، خراب شهرت.

**بدنسله** (badnásla) ص. نب. کم اصله، بداصله.

**بدنصیبه** (badnasíba) ص. نب. بدقسمته، سپېره، بدبخته، بدمرغه.

**بدنما** (badnumā) ص. نب. بدشکله، بدرنګه.

**بدنوه** (badnáwa) ص. نب. بې حیا، شوخ، سپین سترګی، بې سرپتوبه، بې لحاظه.

**بدنه** (badána) ښځ.م. ۱) د ښار یا کلا یوه برخه؛ ۲) د کلا برج؛ ۲) د ونې تنه (ستنه).

**بدنی** (badnáy) ښځ.م (ج. بدنیاني) لوټه، لوټکه، بګنی.

**بدني** (badáni) ص. نب. جسماني، جسمي، ځاني، هغه چې بدن پورې اړه لري.

**بدنیت** (badnīyát) ص. نر.م. بدنیته، بدخواه، په زړه خیرن، بغضي، رخه ناک.

**بدني ګل** (badanigwál) نر.م. یو ډول کښیده کاري یا انځور ګري ده.

**بدو** (badū) ص. نر.م. ۱) ورانکاری، شیطان؛ ۲) ناپوه، ساده؛ ۳) دښمن، مخالف.

**بدوالی** (badwālay) نر.م. بدتوب، ورانکاري، خرابتیا، بدي.

**بدودي** (badódi) ښځ.م. (ج. بدودی) بدي، تاوان، زیان، نقص، ضرر.

**بدوربوزی** (badwarbūzay) نر.م. ۱) بدشکله، بدقواره؛ ۲) تربو تندی.

**بدورد** (badwárd) ص. نر.م. بدخواه، مخالف، حریف، رقیب، دښمن.

**بدورده** (badwárda) ص. نب. بداخلاق، بدمرغه، بدبخته، بداخلاقه.

**بدورګ** (badwárg) ص. نر.م. فسادي، شریر، غوسه ناک، قهرجن، شیطان.

**بدورګېدل** (badwargēdál) مص. ل. قهرجن کېدل، غوسه کېدل، فسادي کېدل.

**بدوړ** (badwáṛ) ص. نر.م. تاوان رسوونکی، زیان رسوونکی، فسادي، ورانکاری، شریر.

**بدوړتوب** (badwaṛtób) نر.م. بدکاري، ورانکاري، مضرتوب، شرارت.

**بدوړده** (badwáṛda) ص. نب. مخالفت، په غوسه، پاربدلی.

**بدوړل** (badwṛál) مص. مت. بد ګڼل، کرکه کول.

**بدوروَل** (badwarwə́l) مص. مت. شیطاني کول، شرک ورانې کولو ته لمسول.

**بدورمه** (badwáẓma) ص. نب. بدبویه، خوسا، بوي ناک.

**بدوک** (badúk) ص. نسر.م. فسادي، بدو، بدي، ورانکاري، شري.

**بدوکری** (badwakáray) ص. نر.م. (ج. بدوکري) بدرنګ، بددوله، بدخېره.

**بدول** (badawə́l) مص. مت. ۱) خرابول، ورانول. ګډوډول؛ ۲) ناراضه کول، خفه کول.

**بدونه** (badawə́na) ښځ. م. (ج. بدونې) ورانونه، ویجاړونه، خرابونه، رنګونه.

**بدوي** (badáwi) ص. نب. سارایي، بېدیاني، کوچی.

**بدویت** (badáwyat) نر.م. دمدنیت ضد، کوچیتوب، سارانیتوب، سارایي توب.

**بدوین** (badwín) بدکتونکی، د بد نظر خاوند.

**بده ورځ** (badawáraǰ) ښځ. م. (ج. بدې ورځې) ۱) سپېره ورځ، بدمرغي؛ ۲) غریبي، خواري.

**بدهضمي** (badhazmi) ښځ. م. دګېډې خرابوالی، د خوړو نه هضمېدنه.

**بدي** (bádi) ښځ. م. (ج. بدۍ) دښمني، عداوت.

**بدی** (báday) ص. نر.م. مضر، بدغونی، شیطان.

**بدۍ** (badə́y) ښځ. م. ۱) اوبو وري ځای یا هغه لښتي چې اوبو وري وي؛ ۲) د کانال غاړه.

**بدیا** (badyā́) ښځ. م. تاوان، زیان، ضرر، دښمني.

**بدیدار** (badidā́r) ص. نسر.م. دښمن دار، د بدی خاوند، پتنه دار، پتنه لرونکی.

**بدېدل** (badedə́l) مص. ل. ۱) مخالف کېدل، دښمن کېدل؛ ۲) خرابېدل، ورانېدل.

**بدیع** (badí') نسر.م. ۱) خالق، پیدا کوونکی؛ ۲) عجیبه، نادر، نوی؛ ۳) د بدیع علم، هغه علم چې د کلام د ښه والي وجهه څرګندېږي.

**بدیل** (badíl) نر.م. عوض، ځای ناستی، جانشین.

**بدیهه** (badihá) بې له فکره صحیح خبره کول او شعر ویل.

**بدیهي** (badíhi) هغه شه چې د پوهېدو لپاره یې فکر ته اړتیا نه وي، ښکاره، څرګند.

**بډ** (baḍ) نر.م. ۱) سیال، برابر ساری، ثاني، نظیر، جوګه، مقابل؛ ۲) ص.نر.م. څرګند، جوت.

**بډ** (buḍ) ص.نسر.م. یو لاسی، بونډی، مونډی، مونډ، شوټی، د یوه لاس خاوند.

**بډا** (baḍā́) ص. نر.م. (ج. بډایان) شتمن، پانګوال، دولتمن، غني، موړ.

**بډایتوب** (baḍāytób) نر.م. شتمني، دولتمندي، غنیتوب، سرمایه دارتوب، بډایي.

**بډایي** (baḍā́yi) ښځ. م. کبر، ویاړ، غرور، لویي.

**بډبول** (baḍból) ص.نر.م. رښتوني سپین ویونکی، رښتیا خبره کوونکی.

**بډبول توب** (baḍboltób) نسر.م. رښتین توب، سپینه خبره کول، په ډاګه ویناً.

**بډګ** (baḍág) نسر.م. د به ګال، نسریوخ، بډګال، بډه ګال، د لوخې ګل.

**بډګوند** (baḍgónd) مخالف ګوند، مخالف حزب.

**بډګي** (baḍági) ښځ.م. بې غایه ګرځېدنه، خوشې ګرځېدنه، ابله ګرځېدنه.

**بډل** (baḍál) نسر.م. ۱) لټ، تنبل، سست، بېکاره؛ ۲) نر.م. دګیډړ واده، د باران د اوربډو په وخت کې چې لمر راښکاره شي.

**بډمانیز** (baḍmā́niz) نر.م. متضاد ټکی، متقابلې مانا وي.

**بډو** (baḍū́) ص. نر.م. بډې خور، رشوت خور.

**بډواله** (baḍwā́la) اړېچواله، مخالفت پالنه.

**بډودی** (baḍū́ḍay) نر.م. پښتورگی، بډوگی.

**بډوگو** (baḍū́go) ښځ.م. بوډی، زړه، سپین سرې، هغه زړه ښځه چې ملایې کړوپه وي.

**بډوگی** (baḍū́gay) نر.م. (ج. بډوگي) زوړ، سپین ږیری، هغه بوډا سړی چې ملا یې کړوپه وي.

**بډولی** (baḍólay) نر.م. (ج. بډولي) کوزه ړی.

**بډه** (báḍa) ښځ.م. ۱) د پرتوگ پاسنی برخه، بگه: ۲) ننبه، موخه: ۳) د میاشتې اخیري شپې چې سپوږمۍ نه لیدل کیږي: ٤) ناغه، غیرحاضري ۵) انډول، برابر، د دوه څیزونو یو توله والی.

**بډه بول** (baḍaból) نر.م.و.گ. بډبول.

**بډه ور** (baḍawár) ص. نر.م. ۱) غرني خلک: ۲) ناپوه خلک، له مدنیت نه لیرې خلک.

**بډې** (báḍe) ښځ.ج. رشوت، بډه.

**بډی** (báḍay) ص.نر.م ۱) یولاسی، شوتی، شونتی: ۲) انډول، جوړه، سیال.

**بډۍ** (baḍáy) ښځ.م ۱) یو ډول لامبو ده: ۲) بوډۍ، ویده، د ښیښې یا لاس د وینې جریان ترڅه بندېدو وروسته میږې میږې کیږي.

**بډیایي** (baḍyā́yi) ښځ.م. کبر، لویي، تکبر.

**بډې خور** (baḍexór) ص. نر.م. (ج. بډې خواره) رشوت خور، رشوت اخیستونکی.

**بډۍ لامبو** (baḍaylā́mbo) ښځ.م. یو ډول لامبو ده.

**بډیمار** (baḍimā́r) نر.م. ۱) رشوت ورکوونکی، بډې ورکوونکی: ۲) بډې اخیستونکی.

**بر** (bár) ص. نر.م. ج. ۱) پاس، اوچت، لوړ، هسک: ۲) نر.م. پلنوالی، پسور: ۳) ص.نر.م. بریالی: ٤) نر.م. میوه، حاصل: ۵) د ژبې ناروغتیا: ٦) وړې ځانگې: ۷) گوزن: ۸) د وزو او سپیو یو ډول ناروغتیا: ۹) د لمر او سپوږمۍ تندر نیونه: ۱۰) وچه (څمکه): ۱۱) غېږه، تخرگ: ۱۲) سبزنی، د نښتر پاڼې.

**برابر** (brā́bar) ص. نر.م. ۱) یو ډول، موافق، په طبع، انډول: ۲) اوار، په یوه میچ، په یوه توله.

**برابرا** (brābrā́) ص. نر.م. ځانگې وانگې پروت، گډوډ پروت، غځېدلی پروت، دسم ځند.

**برابرتوب** (barābartób) نر.م. برابرتیا، سمون، سمښت، موافقت، برابرښت، برابروالی.

**برابرول** (barābarawál) مص. مت. ۱) سمول، یو ډول کول: ۲) نېغول: ۳) اوارول، یو میچ کول: ٤) تیارول: ۵) سزا ورکول، وهل.

**برابري** (barābári) ښځ.م. (ج. برابری) سمون، یو شان والی، مساوات، برابرښت.

**برابرېدل** (barābaredál) مص. ل. ۱) سمېدل، جوړېدل، یو ډول کېدل: ۲) سیخېدل، نېغېدل: ۳) اوارېدل: ٤) ساړی کېدل.

**برابوالی** (brābwā́lay) نر.م. بلاربوالی، بلاربېدنه.

**برابلول** (brāblawál) مص. مت. بلاربول، تېرول، برالبول، ورله کول.

**برابله** (brā́bla) ص. ښځ.م. (ج. برابلې) بلاربه، تېره شوې، حامله، امیدواره.

**برابلېدل** (brābledál) مص.ل. بلاربېدل، امیدواره کېدل، حامله کېدل.

**برات** (barā́t) نر.م. ۱) شعبان المعظم: ۲) برخه، حصه، ونډه: ۳) حواله، چک: ٤) هغه غله چې خان خېلو ته وکرانو ته ورکوي برات ورته وایي.

**براڅه** (brā́ja) ښځ.م. ۱) غواڅه، د اوښانو او غټو ښکروړو څاروېو کونې: ۲) یو ډول خزنده چې د څاروېو په پوټکې پورې نښتې وي.

**برار** (barā́r) نر.م ۱) وده، پرمختگ، نمو، نشونما: ۲) پرار، پرېر، ترتر.

**براعظم** (barā́yzam) نر.م. (ج. براعظمونه) لویه وچه لکه آسیا، امریکا، افریقا او...

**براق** (burā́q) نر.م. ۱) سپین، چې کېدونکی، ځلېدونکی؛ ۲) هغه سپین آس چې حضرت محمد (ص) ورباندې معراج ته ختلی و.

**برالا** (barālā́) ص. نب. څرګند، ښکاره، جوت، په جار، په ډاګه، ډانګ پېیلی.

**برالاوېل** (barālāwayә́l) مص. مت. څرګندول، ښکاره خبره کول، جوته خبره کول.

**براله** (brā́la) ښځ.م. (ج. برالې) ایکونه، کولی، د خاورو کنده.

**براندې** (brā́nde) ښځ. م. د سینې او د زړه رګونه.

**برانډه** (brānḍá) ښځ.م (ج. برانډې) کرېکه، کریغه، رمباړه، چغه، چیغه.

**برانډي** (brā́nḍi) نر.م. د شرابو یو ډول.

**برانډۍ** (brānḍә́y) ښځ. م. پوخي کوټ.

**براوډه** (brāwḍá) ښځ. م. (ج. براوډې) ۱) ځان ستاینه، لافې شافې؛ ۲) توکې ټکالې.

**برایه** (barā́ya) ق. بېګا، بېګاني شپه، تېره شپه؛ برایې.

**براینی** (barā́inay) ص. نر.م. بېګانی، د تېرې شپې.

**برباد** (barbā́d) ص. نر.م. ویجاړ، خراب، تباه.

**بربادتوب** (barbādtóh) نر.م. بربادتیا، ویجاړتوب خرابوالی، بربادوالی.

**بربادول** (barbādawә́l) مص. مت. ویجاړول، خرابول، له منځه وړل.

**بربادي** (barbā́di) ښځ.م. (ج. بربادۍ) ۱) زیان، تاوان، تباهي؛ ۲) ص. نب. فضول خرڅه.

**بربادې** (barbā́de) ص. ښځ. ج. خوشې، عبث، پوچې لکه خوشې خبرې.

**بربادېدل** (barbādedә́l) مص. ل. ویجاړېدل، تباه کېدل، زیانېدل، له منځه تلل.

**بربت** (barbát) نر.م. ۱) لویي، غرور، تکبر، ویاړ؛ ۲) بربط، ګیتار، د موسیقۍ یو ډول آله ده.

**بربتی** (barbátay) ص. نر.م. (ج. بربتي) مغرور، کبرجن، کلاتکار.

**بربټۍ** (barbaṭә́y) ښځ. م. بخملي، سره ناوې.

**بربر** (barbár) نر.م. د اور د لمبې د بلېدو اواز.

**بربرک** (burburák) نر.م. ۱) تارتار، پرېشانه، دانه وانه؛ ۲) هغه وابنه یا خس چې تر سوځېدو وروسته سکاره نه لري.

**بربری** (barbáray) نر.م. (ج. بربري) ۱) بیرغ، جنډه؛ ۲) تونده هوا؛ ۳) پېلوڅه، د ونو او بوټو وچې پاڼې چې زر سوځي.

**بربرۍ** (barbarә́y) ښځ. م. پیوره، یو ډول وزه ده.

**بربري** (barbári) ص. نر.م. ۱) وحشي، سارایي، له تمدنه لېرې؛ ۲) بېګانه، پردی.

**بربړو** (barbaṛū́) ص. نر.م. بربړی، مست اوښ.

**بربړوک** (barbaṛū́k) نر.م. شرشره، ځړوبی، چړوبی.

**بربزه** (barbáza) ښځ. م. (ج. بربزې) د څرخ پره.

**بربک** (burbák) نر.م. دال توره، داتوره، دمتوره؛ یو بوټی دی؛ د بې هوښۍ دوا ده.

**بربنډ** (barbánḍ) ص. نر.م. ج ۱) لوڅ، لغړ، برمنډ؛ ۲) بې شرم، بې حیا، لوڅ لپړ.

**بربنډتوب** (barbanḍtóh) نر.م. لوڅتوب، بربنډتیا، برمنډتوب، لغړوالی، بربنډوالی.

**بربنډول** (barbanḍawә́l) مص. مت. ۱) لوڅول، لغړول، برمنډول؛ ۲) شرمول، بې پته کول.

**بربنډېدل** (barbanḍedә́l) مص. ل. ۱) لوڅېدل، لغړېدل؛ ۲) بې پته کېدل؛ ۳) غریبېدل، خوارېدل ۴) جوتېدل.

**بربڼ** ( barbáṇ ) نر.م. (ج.بربڼونه) لوی باغ، لوړ باغ، برباغ، مهابن.

**بربو** ( barbū́ ) نر.م. و گ. بادبرک.

**بربوټاني** ( barbūṭā́nay ) نر.م. (ج. بربوټاني) یو ډول وړه چرمښکی چې په شګو کې وي.

**بربوټه** ( barbū́ṭa ) ښځ.م. (ج. بربوټې) یو ډول غټ بوټی دی چې وړې پاڼې لري.

**بربوړه کی** ( barbūṛákay ) ښځ.م. بربوړکی، بوربوره کی، هغه سیلۍ چې ګرد ځرخ وخوري او پورته جګه شي.

**بربوزک** ( barbū́zak ) نر.م. غرنی پیاز، پیازکی.

**بربوڼی** ( barbóṇay ) نر.م. (ج. بربوڼي) زوال، زول، زوېل، یو ډول ترېخ بوټی دی.

**برپی** ( barpi ) ص. نر.م. ناپوه، زرور، د زرورتیا او میراني په سبب مست.

**برتن** ( bratán ) ص.نر.م. ۱) برتو، غورتن، تروبرو؛ ۲) ډارن، ویرندونکی؛ ۳) لاپو.

**برته** ( bartá ) ښځ.م. ۱) تور یا سرۀ بانجان چې په اور وریته شي؛ ۲) په شومړو کې چې بادرنګ میده شوي وي.

**برتي** ( bárti ) ښځ.م. ۱) کوشېر، د دوو اوسپنو کوشېرونه او پیوندونه؛ ۲) استخدامېدنه.

**برتیایي** ( bartyā́i ) نر.م. برلاسي.

**برټ** ( bráṭ ) نر.م. جوره، ژروی، ژوره، جوکه.

**برج**(۱) ( bráj ) نر.م. برغ، برجل، تاپو، د کلا په کونج کې لوړه ودانۍ.

**برج**(۲) ( bárj ) نر.م. دونې نرۍ پوټکی چې زیاتره به د لیکلو لپاره کارېده.

**برج**(۳) ( burj ) نر.م. میاشت، ماه.

**برجاو** ( barjā́w ) ص. نر.م. پر او معمور، ډک، سېهلی، سېخ، سرموری، بارجاو.

**برجاوتوب** ( barjāwtób ) نر.م. ډک والی، بېخي زیات ډک والی، سېخوالی.

**برجاوول** ( barjāwawə́l ) مص. مت. ۱) ډکول، بارجاوول، سېخول؛ ۲) پر او معمور کول.

**برجتو** ( barjatū́ ) ص.نر.م. ورانکاری، فسادي.

**برجد** ( barjád ) ص. نر.م. نېغ ولاړ، پر ځای ولاړ.

**برجغ** ( barjáğ ) ص. نر.م. و گ. برجاو.

**برجق** ( barjáq ) ص. نر.م. و گ. برجاو.

**برجک** ( barják ) ص. نر.م و گ. برجاو.

**برجو** ( barjū́ ) نر.م ۱) برجي، بهلو، نوزی؛ ۲) د چړې د تېره کولو ځرخ؛ ۳) باړخو، اننګی؛ ٤) د مشانې تیږه، د مشانې ډبره.

**برجۍ** ( burjáy ) ښځ.م. برځۍ، د یو ځای د وېشلو او برید ښوولو لپاره نښه.

**برجي** ( bárji ) ښځ.م. مسخورینه، هغه تیږه چې لرونه، چړې، چوړکي وریاندې تېرۀ کېږي.

**برځ** ( braź ) ښځ.م. ۱) و گ. برج(۱)؛ ۲) برځه، پلین، پریم، ځاړو، د نس پرده، ځوړ.

**برځوړی** ( barźóṛay ) نر.م. د بلې پراویز او چجه چې د ناوې کارځنې اخیستل کېږي.

**برچک** ( barčák ) ص. نر.م. (ج.برچکي) برجاو، بردم، ډېر ډک، سېخ په سېخ، تر خولې ډک، تر مورګو ډک.

**برچکی** ( barčákay ) نر.م. ۱) بچکری، پېیوی؛ ۲) لټ، پړکه، کنجک، کونډه.

**برچه** ( barčá ) ښځ.م. هغه تېره تېغ چې د توپک له شپېلۍ سر سره تومبل کېږي.

**برڅوري** ( barcóṛi ) جن. د اړې بوړ، د اړې بوره، د اړې بوس، د اړې سي.

**برڅېرن** ( barcéran ) ص. نر.م. سرسري، برسېرن؛ ځرخنده، ځنګځن، د پاسه، ښکاره.

**برڅېرول** (barcerawə́l) مص. مت. ۱) ښکاره کول، څرګندول، جوتول.

**برڅېره** (barcéra) ق. څرګند، ښکاره، جوت.

**برڅېرېدل** (barceredə́l) مص. ل. ښکاره کېدل، برڅېره کېدل، څرګندېدل، جوتېدل.

**برحال** (barhā́l) ص. نر.م.ج. موجود، پرځپل ځای، پرکار ولاړ.

**برحق** (barháq) نر.م. ۱) حق په جانب، په حقه، په رښتيا؛ ۲) صحيح، سم، درست.

**برخلاف** (barxilā́f) نر.م. ۱) دښمن، مخالف؛ ۲) سرچپه، پرعکس، بل شان.

**برخلافول** (barxilāfawə́l) مص. مت. مخالفول، دښمنول، سره ورانول.

**برخلافي** (barxilā́fi) ښځ.م. دښمني، ورانه، وراني، ورانښت، بدي، مخالفت.

**برخليک** (barxlík) نر.م. قسمت، تقدير، نصيب، ازلي ليک، د تندي ليک.

**برخليکواله** (barxlikwā́la) نر.م. برخليک پالنه، برخليک سازي.

**برخمن** (barxamə́n) نر.م. د برخې خاوند، برخوال، بهره مند، برخوردار.

**برخوال** (barxawā́l) نر.م. ګډون کوونکی.

**برخور** (barxawár) ص. نر.م. ۱) د برخې خاوند، د ولايت څښتن؛ ۲) نېکمرغه، بختور.

**برخوردار** (barxordā́r) نر.م. ۱) بچی، زوی؛ ۳) نېکمرغه؛ ٤) تابع دار؛ ٥) مستفيد.

**برخه** (barxá) ښځ.م. ۱) ونډه، سهم؛ ۲) طالع، قسمت، نصيب، تقدير.

**برخه اخيستل** (barxaaxistə́l) مص. مت. ۱) ونډه اخيستل، حصه اخيستل، خپل حق اخيستل؛ ۲) په څه کار کې ګډون کول.

**برخه برخه** (barxabárxa) ښځ.م. ونډه ونډه، حصه حصه.

**برخه من** (barxamán) نر.م. ۱) څوک چې فيض يې موندلی وي؛ ۲) د کرامت څښتن؛ ۳) سهيم.

**برخه ميندل** (barxamində́l) مص. مت. ۱) برخه پيدا کول، حصه اخيستل؛ ۲) د برخې خاوند کېدل، کرامت والا کېدل.

**برخيز** (barxíz) ص. نر.م ۱) برخه وال، د ونډ خاوند، شريک؛ ۲) قسمي، قسماً.

**برخيزه همرنګي** (barxizahamrángy) ښځ.م. توکيزه (جزيي) همرنګي (غږ پوهنه).

**بردم** (bardám) ص. نر.م. ۱) پوره، پړسېدلی، ډډ، ډک؛ ۲) برجاو.

**بردمول** (bardamawə́l) مص. مت. ۱) پړسول، ډکول؛ ۲) برجاوول.

**بردی** (bardáy) ص. نر.م. سرښناک، چسپناک، نښلېدونکی.

**برړا** (barṛā́) نر.م. برړی، برړه، يو ډول مرغه دی.

**برړول** (barṛawə́l) مص. مت. ۱) هغه مېږه او وزه چې لنګه وي او تېره شي؛ ۲) د مستو اوښ برړول ۳) ښکنځلو او ښېرا په ډول هم کارېږي.

**برړه(۱)** (baráṛa) ښځ.م. (ج. برړې) يو غرنی بوټی دی چې پاڼې او اغزې نه لري.

**برړه(۲)** (barṛá) ښځ.م. (ج. برړې) برړی، برړې، تالووهنه، د مست اوښ اواز.

**برړی** (bárṛay) نر.م. د واښو وړوکی ګېډی.

**برړېدل** (barṛedə́l) مص. ل. ۱) برړېدل، برړېدل؛ ۲) په زور زوره او چټې خبرې کول.

**برزاله** (barzā́la) ښځ.م. څېزمه، څرمه، برزوله، د سترګې د ګاټې پاسني او لاندني پوستکي چې بانه وربانډې راشنه وي.

**برزخ** (barzáx) نر.م ۱) ددوه شیزونو ترمنځ حایل؛ ۲) له مړینې د قیامت تر ورځې د دنیا او آخرت ترمنځ عالم.

**برزنګ** (barzáng) نر.م. د خوراک ساتلو لوی بنانک دوله لوښی، چې چاپسه د غنم اوبه ءي چې له سپړېو شخه وساتل شي.

**برزنګی** (barzángay) نر.م. هغه غټ سړی چې دماغ یې سم کار نه کوي.

**برزو** (barzú) نر.م. ۱) یو ډول له وړغنو شخه جوړ شوی کالی؛ ۲) یو ډول وړینه جامه.

**برس** (burs) نر.م. برش، زیږوګی.

**برسات** (barsát) نر.م. د پشکال بارانونه.

**برساتی** (bar sātáy) ښځ. م. و ګ. باراني

**برساتي** (barsátí) نر.م ۱) په مسافرۍ کې خوشاند شخص؛ ۲) لوچک، فضول خرڅ؛ ۳) باراني.

**برسنډه** (barsánḍa) ښځ. م. د کچالو لویه دانه چې وړوکي کچالو ورپورې نښتي وي.

**برسنډې** (barsánḍe) ښځ. م. ۱) د نیلوفر یا کنول د ګل شانګې او جرړې؛ ۲) هر پړسېدلې شیز.

**برسېرانډ** (barserā́nd) نر.م. لوڅاوو، کشاف.

**برسېرنه** (barserána) ښځ. م. اندکه او سرسري خبره، وړه او کمکی خبره.

**برسېره** (barséra) ق. ښکاره، جوت، څرګند، رابېرته، خلاصه، واز، راسپړلی.

**برش** (bráš) نر.م. ۱) برس، د بوټونو، جامو، غاښو د پاکولو آله؛ ۲) سکنټ؛ ۳) تکره والی، تېزوالی؛ ٤) څېره، قواره.

**برطرف** (bartaráf) ص. نر.م. لرې شوی، شړلی، معزول، موقوف، له ماموریت نه ایستل شوی.

**برعکس** (barsáks) ص. نب. پرعکس، سرچپه، اوښتی، مخالف، معکوس، پړمخ.

**برغ** (bráǧ) ص. نر.م. ج. ۱) غبرګ، جوړه جفت؛ ۲) نر.م. شکنجبین، سکنجبین.

**برغاست** (barǧā́st) نر.م. غم، ویر، ماتم.

**برغټ** (bárǧuṭ) نر.م. پیشو پرانګ، پیشپرانګی، برغوټ، ځنګلي پیشو، غرنی پیشو.

**برغټی** (barǧuṭáy) نر.م. (ج. برغوټی) ځبلی، ځیری، کجیران، یو ډول دانه ده.

**برغد** (bárǧd) ص. نر.م. و ګ. برغ.

**برغزوې** (barǧazúwe) ښځ. ج. اوتې بوتې، اپلتې، لوتې، چتې او بې مانا خبرې.

**برغمن** (barǧmán) نر.م. ګتور، سودمن.

**برغنجور** (barǧanjúr) ص. نر.م. ۱) کمزوری، مانده، دنګر، ایږ؛ ۲) ناروغ، رنځور.

**برغنډ** (barǧánd) نر.م. برغنډی، د لرګي تنه چې پرې شوې او ببله ببله شوې وي هرې برخې ته یې برغنډوایي.

**برغنډ کول** (barǧandkawál) مص. مت. پربکول، قلمول، د تبر په واسطه قلمول، د تبرګي په واسطه تنه برغنډول.

**برغنډی** (barǧánḍay) نر.م. ۱) ورکوتی پتی؛ ۲) برغنډ؛ ۳) د ماهي توته.

**برغنه** (barǧána) ښځ. م. ځنګلي وله چې له ځانګو نه یې توکرۍ او شکرۍ جوړېږي.

**برغو** (barǧú) نر.م. ۱) نپیل، بورغو؛ ۲) سورنی، هغه ښکر چې د تورنګ کار ځني اخلي؛ ۳) د توپک د شپېلۍ پاکولو سیخ؛ ٤) تېزه برمه چې اوسپنه سوری کوي.

**برغوالی** (bragwálay) نر.م. غبرګ والی، غبرګون، جوړه والی، برغد والی.

**برغوټی** (barǧúṭay) نر.م. ۱) ګوشواره، والی؛ ۲) ځیلی دانه، چنګابن دانه، کجیران.

**برغوځه** (barǧúca) ښځ. م. بروځه، يو ډول غرني وابنه چې د تيږو په منځ کې شنه کېږي.

**برغوږی** (barǧwáẓay) نر.م. د غوږونو ګانه.

**برغول** (braǧawál) مص. مت. وګ. برغدول.

**برغولی** (barǧólay) نر.م. ۱) برغبلی، د کټوې سرپوښ؛ ۲) کوترۍ، د ستنې خولۍ، د تبر يا بش ترمنځ لرګی؛ د ويشې او متې ترمنځ چمچی ۳) پړمخي؛ ٤) پټه خوله کېده.

**برغونډی** (bargoúnḍay) نر.م. په نغري کې د انګار ساتلو لپاره کوټی (جغورګی).

**برغونکی** (barǧúnkay) نر.م خاورين چلم.

**برغونه** (braǧawána) ښځ.م. جوړه کونه.

**برغوني** (braǧúnay) ص. نر.م. غبرګوني، جوړه پيدا شوي (کوچنيان).

**برغوونکی** (braǧawúnkay) فا. نر.م. ۱) غبرګوونکی؛ ۲) تکراروونکی، خبره اړوونکی.

**برغه** (bárǧa) ښځ. م. ګټه، فايده، نفع.

**برغې** (barǧáy) ښځ. م. ۱) بغرۍ؛ ۲) بلنګرۍ، بټېل، اونګ.

**برغېدل** (braǧedál) مص. ل. غبرګېدل، برغدېدل.

**برق** (bárq) نر.م. ۱) بريښنا، بجلي؛ ۲) هغه رڼا يا اور چې د وريځو د ټکر په واسطه پېدا کېږي.

**برقه** (burqá) ښځ. م. (ج. برقې) وګ. بوغره.

**برقي** (bárqi) ص. نب. ۱) د برق، د بريښنا، بريښنايي ۲) هغه څوک چې د برق فني چارې ترسره کوي.

**برکت** (barákat) نر.م. ۱) زياتوالی، ډېروالی؛ ۲) نېکبختي، نېکمرغي، سعادت.

**برکتي** (barákati) ص. نب. نېک بخت، نېکمرغ، طالعمن، عزتمند، اعتباري.

**برکښ** (bárkaṣ) نر.م. د لينديٰ ژی.

**برکښه** (bárkáṣa) ښځ. م. له تبکې څخه ايستلې توره يا چاړه.

**برکند** (barkánd) نر.م. ۱) سرکند، چټکه منډه، په يوه سامنډه؛ ۲) مثل.

**برکول** (barkawál) مص. مت. ځناور ځنډل.

**برکه** (baráka) ښځ. م. يو ډول وړين تېوکر چې د لاس په واسطه اوبدل کېږي.

**برکۍ** (barakáy) ښځ. م. ګرلسه، ګينده، ترنګړ، کوری، ګونده، کشه، ګرلځه.

**برکی** (barákay) نر.م. ۱) اورمړ ته برکی هم ويل کېږي؛ ۲) د اور د لمبې بربری.

**برګ** (brág) ص. نر.م. ۱) دوه رنګی، څورنګی؛ ۲) پيس، پمن، برګی؛ ۳) تګ، تګمار، منافق؛ ٤) غوسه شوی.

**برګتوب** (bragtób) نر.م. برګوالی، دوه رنګه والی، برګتيا.

**برګټی** (bargáṭay) نر.م. ۱) د يو مارغه نوم دی؛ ۲) وګ. پرکټی.

**برګړندی** (bargránday) نر.م. روغبړ، ستړي مشي، ښه راغلي کول.

**برګ سترګی** (bragstárgay) ص. نر.م. وچ سترګی، سپين سترګی، بې حيا، بې شرم.

**برګک** (bargák) نر.م. د تمباکو په څېر بوټی دی.

**برګوته** (bargwáta) ښځ. م. کچه ګوته، کوچنۍ ګوته، کچی ګوټه، خچی ګوته.

**برګول** (bragawál) مص. مت. ۱) څورنګه کول؛ ۲) قهرول، عصبي کول.

**برګه** (bargá) ښځ. م. ډاګه، لاړی، هغه وروکی چارتراش چې د ونې له تنې نه لاس ته راځي.

**برګه زمانه** (brágazamána) ښځ. م. تګه زمانه، بده زمانه، خراب وخت.

**برګی** ( brágay ) ص. نر.م. (ج. برګي) ۱) د پیس په ناروغی اخته؛ ۲) د وه مخی، تګ مار.

**برګي** ( brági ) ښځ. م. (ج. برګی) تګي، چلبازي، له تګی سره یو ځای د مهمل په توګه راځي.

**برګېدل** ( bragedál ) مص. ل. ۱) ځورنګه کېدل؛ ۲) قهرېدل؛ ۳) د پیس په ناروغی اخته کېدل

**برګیر** ( bárgir ) نر.م. قیصر، شخبده، له سوږ توږ کېدو څخه پیدا شوې ناروغي.

**برل** ( barál ) مص. ل. ګټـه کـول، بریـالی کېدل.

**برلا** ( barlā́ ) نر.م. لوړ، په طبقاتي لحاظ لوړ.

**برلاسی** ( barlā́say ) ص. نـر.م. زورور، غـالـب، زبردست، بر، باندې.

**برلوکی** ( barlū́kay ) نـر.م. (ج. برلوکي) ۱) هغه نبات چې د مولی په څېر وي، باندنی برخې ته یې برلـوکی ویل کېږي؛ ۲) تر ربـېلو وروستـه په پټي کې پاتې شونی کښت.

**برله** ( bárla ) ښځ. م. (ج. بـرلې) هغه اسپه، چې تور تورتکي وریاندې وي؛ خالداره اسپه.

**برلی** ( bárlay ) نر.م. (ج. برلی) د ربـل شـوی وابنه څوکه، د لښتي غوځ ځای.

**برم** ( brám ) نر.م (ج. برمونه) شان و شوکت، دبدبه، غرور، لويي، غښتوالی، پیاوړتیا.

**برمانته** ( barmā́nṭa ) ښځ. م. وحشي توب، وحشت، بربریت.

**برمانو** ( barmā́ṇū́ ) نـر.م. ۱) ځنګلي او وحشي انسان؛ ۲) شهوتي او مست سړی.

**برمته** ( barmáta ) ښځ. م. (ج. برمتې) یرغمل، د چا مال یا سړی د یو څه په بدل کې نیول.

**برمک** ( barmák ) نـر.م. ۱) خمبه، پنـدوره، د ختـو کندو؛ ۲) د برمکیانو د کورنی لومـړی سړی، چې د ویشتاسپ لمسی کېږي.

**برمل** ( barmál ) نر.م. ماسپښین.

**برملا** ( barmalā́ ) ص. نب. برالا، څرګند، په ډاګه.

**برملاتوب** ( barmalā́tób ) نـر.م. څرګندوالی، جوت والی.

**برمنډ** ( barmáṇḍ ) ص. نر.م. و ګ. بربنډ.

**برمنډتیا** ( barmanḍtyā́ ) نر.م برمنډتیا، بربنډوالی، لوڅوالی، لغړتوب.

**برمه** ( bárma ) ښځ. م. (ج. برمې) تبخۍ، د سوري کولو یوه آله چې زیاتره له ترکاڼانو سره وي.

**برمه کار** ( barmakā́r ) نر.م. (ج. برمه کاران) برمه کوونکی، هغه څوک چې برمه کاروي.

**برمی** ( brámay ) ص.نر.م. د شان او شوکت خاوند، د قدرت او پیاوړتیا خاوند.

**برمۍ** ( barmáy ) ښځ. م. توکی، کوپی، په کوهي کې دورکوزېدو لپاره د پښې ایښودلو پاتکی.

**برمیالی** ( bramyā́lay ) ص. نر.م. (ج. برمیالي) د دبدبې خاوند، د شان او شـوکت څښتن.

**برناحق** ( barnā́haq ) ق. وچ په وچه، بې سببه.

**برنغ** ( bráṇ̃ ) نر.م. پیپره او خواره غوښه.

**برند** ( bránd ) ص. نر.م. ۱) لټ، سست، ناراسته؛ ۲) قهرجن؛ ۳) سپین سترګی، بې حیا.

**برندو** ( brandū́ ) نر.م. خوړ، لګد، لګده، لکړ، رود، شست.

**برندول** ( brandawál ) مص. مت. قهرول، غوسه کول، ببرول.

**برنده** ( brandá ) ص. ښځ. م. ۱) نوې ځواني، شونډه توربدل؛ ۲) چابک، ګرندی، وندی، چالاک.

**برندی** ( bránday ) نـر.م. (ج. برندي) دوک، یوه آله ::، چې جولاګان پرې تار تاووي.

**برندېدل** ( brandedál ) مص. ل. قهرېدل، ببرېدل، غوسه کېدل، سترګې وریاندې را ایستل.

**برندې سترګې** (brandestárge) ښځ.ج. ۱) قهرجنې سترګې؛ ۲) ملالې سترګې.

**برنډه** (baránḍa) ښځ.م. (ج. برنډې) دالان، برانده، د کوټو د مخ ځای.

**برنډی** (branḍáy) ښځ.م. د لنډو لستونو بنیین؛ د لنډو لستونو والا کورتی.

**برنی** (báranay) ص. نر.م (ج. برني) ۱) بېګانی، د بېګاه شپې، شپنی؛ ۲) پورتنی، پاسنی.

**برنۍ** (baranáy) ښځ.م. د سکوی یو ډول، یو ډول ګنډل.

**برڼه** (burṇá) نر.ج. ۱) و.ګ. بانه؛ ۲) سپېرووني، هغه اوره چې د پېړې جوړېدو په وخت کې ځنې کار اخیستل کېږي.

**برو** (baró) ښځ.م. ۱) یو ډول تود باد چې د غنم لو په وخت کې لګېږي؛ ۲) یو ډول بوټی دی.

**بروله** (barwā́la) ښځ.م. بېرواکي، اشرف سالاري، اریستوکراسي.

**بروپیا** (baropyā́) ص. نر.م. ۱) نقلي، توکمار؛ ۲) تګمار، مکار، چلولي، چلباک.

**بروټی** (barwáṭay) نر.م. ۱) دسترخوان، څپوني؛ ۲) د غنمو یا اوربشو یو موټی؛ ۳) دلرګیو یا نورو شیانو ګېډی، چې ښځې یې په سر وړي.

**بروټۍ** (baroṭáy) ښځ.م. د لرګیو ګېډی چې ښځې یې پر سر وړي، کوچنی ګېډی.

**بروډ** (baróḍ) نر.م. لاپو، لاپوک، باټوک، غوړتن.

**بروډکاسټ** (broḍkā́sṭ) نر.م. د راډیو په واسطه خپرونه.

**برور** (brór) نر.م. د بلور مغفن شوې بڼه.

**بروړه**(۱) (baróṛa) ښځ.م. (ج. بروړې) خمندکه، یو ډول وره خزنده ده.

**بروړه**(۲) (bróṛa) ښځ.م. (بروړې) ګېډوله، ګډله، د ګډوډو غلولو اورو څخه پخه شوې ډوډۍ.

**بروز** (barwáz) نر.م (ج. بروزونه) پرویزی، غلبېل، چاڼی، چڼوونی.

**بروزوالا** (barwazwālā́) نر.م. هغه څوک چې بروز خرڅوي.

**بروزه** (barwáza) ښځ.م. ۱) بروخه، یو ډول پاسته غرنی وابنه چې د فرشولو کار اخلي؛ ۲) یو بوټی چې د صابون پر ځای استعمالېږي.

**برول** (barawál) مص. مت. یو شی په زور سره (اچول، غورځول، ګوزارول یا شړل).

**برونه** (brūṇá) جن. سپېرووني، سپېره، بونه، برڼه، د پېړو جوړولو اوره.

**برونی** (barū́ṇay) نر.م ۱) دڅرخ پره؛ ۲) هغه سوری چې د څرخ د میل سر په کې چورلي؛ ۳) اورنی، رونی، رنی.

**بروه**(۱) (bárwa) ښځ.م. (ج. بروې) فریاد، چغه، کریکه، زګېروی.

**بروه**(۲) (baráwa) ښځ.م. (ج. بروې) کبل، مرغه، بېروه، یو ډول وابنه دي.

**بروی** (barwáy) ص.نر.م. سرېښناک، لېسدار، نښلېدونکی.

**بره** (bará) ښځ.م. (ج. برې) ۱) څرګندېدنه، راختنه؛ ۲) پیل کېدنه؛ ۳) ص.ښځ.م. د بسر (بریالی) مؤنث شکل؛ ٤) د بر (اوچت) مؤنث شکل.

**برهار** (barhā́r) نر.م. برار، د اور د شغلې اواز.

**برهان** (burhā́n) نر.م. دلیل، ښکاره ثبوت.

**برهانه** (burhā́na) ښځ.م. (ج. برهانې) لړ، لړی، د شګو د غونډیو او ډبریو سلسله.

**بره ګړه** (baragáṛa) ښځ.م. و.ګ. برګړندی.

**برهم** (barhám) ص.نر.م.ج. ۱) خپورروور، گډوډ؛ ۲) خفه، قهرجن، په غوسه؛ ۳) ضایع، پوچ.

**برهمول** (barhamawə́l) مص. مت. گډوډول، ورانول، ویجاړول، ړنګول.

**برهو** (barhū́) ص.نر.م. بې لوزه، بې قوله، بې ژبې، بې ژمې، بې وعدې، ټګ.

**بری**[۱] (báray) نر.م. کامیابي، فتح، غلبه، سوبه.

**بری**[۲] (bráy) نر.م ۱) سر، سراخیستنه؛ ۲) بغاوت، سرکښي، متابعت نه کونه.

**بري** (bari) ص.نب. سپېڅلي، ژغورلي، ازاد.

**بریا** (baryā́) ص. ښځ. م. ۱) په لاس راغلې څیز، موندل شوی؛ ۲) د ډېرې ستوماني له امله ملا شخېدل.

**بریاړه** (baryā́ṛa) ښځ.م. هغه غوا چې په پاده کې نه ځري.

**بریاله** (baryā́la) ښځ.م. دریڅه، دریڅچه، کړکۍ، د وروڅه، د هوا او رڼا د ننوتو سوری.

**بریالی** (baryā́lay) ص. نر.م. ۱) بر شوی، غالب، سوبمن، کامیاب؛ ۲) غوره، اوچت.

**بریالیتوب** (baryālitób) نر.م. ۱) کامیابي، فتحه، سوبه؛ ۲) اوچت والی، لوړوالی.

**بریاینه** (baryā́yana) ښځ.م. تادیه، رسونه، ورکول، ادا کول.

**برېت** (brét) نر.م. د پاسني شونډې د پاسه وېښته.

**برېت غوړ** (bretğwáṛ) نر.م. ۱) د برېتونو غوړولو تېل یا غوړ؛ ۲) بډې، رشوت.

**برېتو** (bretū́) ص.نر.م. برېتور.

**برېځک** (brejə́k) نر.م. یو ډول شینکی، د ختکي له کورنۍ څخه دی خو شین خوړل کېږي.

**بریچ** (bríč) نر.م. د توپ یا توپک هغه برخه چې ګولۍ یا کارتوس په کې ورکول کېږي.

**برېڅر** (barecár) نر.م. ځاښت، غرمه، برېځر، کچه غرمه.

**برید** (brid) نر.م. ۱) پوله، حد؛ ۲) شروع، پیل؛ ۳) یرغل، حمله، غوټه.

**بریدبندي** (bridbándi) ښځ.م. برید تړ، مرز بندی.

**برید په برید** (bridpábrid) ق. پوله په پوله، یو بل سره نږدې، څنګ په څنګ.

**برید جنرال** (bridjanrā́l) نر.م. د فرقې بولندوی او د ملکي دوهمې رتبې معادل.

**برېدل** (baredə́l) مص. ل ۱) کامیابېدل، غالبېدل؛ ۲) پرېدل، ترېدل؛ ۲) الوتل.

**بریدلیک** (bridlík) نر.م. سریزه، سرې، مخنۍ خبرې، د سرخبرې، مقدمه.

**بریدلیکه** (bridliká) ښځ.م. سرحدي لیکه، د دوو وګړو د دوو (لهجو) ترمنځ بېلوونکې لیکه.

**بریدمن** (bridmán) نر.م. له لومړي بریدمن څخه تر دریم بریدمن عسکري صاحب منصبانو ته ویل کېږي.

**بریدمېشتی** (bridmeštáy) نر.م. بریدوال، سرحدمېشتی.

**بریدوال** (bridwā́l) نر.م. سرحدي، سرحدار.

**بریدوالي** (bridwā́li) ښځ.م. سرحداري، د سرحدي چارو څانګه.

**بریدوهل** (bridwahál) مص. مت. ۱) د چا د پټي پوله خپلې ځمکې ته راګډول؛ ۲) حمله کول.

**بریدیز** (bridíz) نر.م. سرحدي، مرزي.

**برېړه** (bréṛa) ښځ.م. (ج. برېړې) د اربړې یو ډول.

**برېز** (bréz) نر.م ۱) کیڅی، کتمل، کونک، خسک، منګوره؛ ۲) یو ډول اغزی.

**بریزن** (barezán) نــر.م.د گــه، ورغـومـی یا وزې بغارې او بامبو.
**بریزنه** (brezána) ښځ.م. پـه‌چوومی، مخ په‌لوړه، نبنده، مخ په‌جګه، مخ پورته.
**بریږه** (barezá) ښځ.م. (ج.بریږې) د سپي غوړېده، د سپي غورهار.
**بریږه** (barežá) ښځ.م. ۱) نوکه‌وره پنجه، نوکداره پنجه؛ ۲) نر.م. خرې (شله)، کار پسې اړم، یو شي ته‌ډېر تېنګ، یو څه پسې ډېر باعث.
**بریښ** (bréș) نــر.م. ۱) (مکتبي پرکمشر) چې د لـومـړنیو یا منځنیـو زده کړو وروسته‌یې یو عسکري ښوونځي لوستی وي اود وړوضابطانو برې‌لیک یې اخیستی وي؛ ۲) ځلا، ځلق، پرق، ځلک؛ ۲) دړد، درد، سانګه، څریکه، خور.
**بریښ** (briș) نر.م ۱) تېزي، ګړندیتوب، وندی توب ۲) تکړه توب؛ ۳) فعالیت.
**بریښن** (breșán) ص. نـر.م. ۱) بریښ لـرونکی؛ ۲) ځلند.
**بریښنا** (breșná) ښځ.م. ۱) بـرکه، ځـلا، ځـلق، پیلبو؛ ۲) برق، بجلي.
**بریښنااورګاډی** (breșnāorgáḍay) ص. نر.م. په‌بریښنا چلېدونکی اورګاډی.
**بریښنابرج** (breșnābráj) نر.م. د بریښـنا برج، ترانسفرمر.
**بریښنا بند** (breșnābánd) نر.م.د بریښنا بند.
**بریښناچي** (breșnáči) نــر.م. برقي، هغه‌څـوک چې د بریښنا د لینونو غځولو دنده اجرا کوي.
**بریښنا ربېغ** (breșnārébγ) بریښنا جارو.
**بریښنازېږ** (breșnāzéγ) برق‌زېږوونکی.
**بریښنا ژرنده** (breșnāžránda) برقي ژرنده.
**بریښناښود** (breșnāșód) بریښنا ښودونکی.
**بریښناک** (breșnák) ص.نر.م. ځلاند، ښایسته. ځلقند، پرکند.
**بریښناکوټ** (breșnākóṭ) د برق‌ستېشن.
**بریښنامېچ** (breșnáméč) نر.م. د برق میټر.
**بریښند** (breșánd) ص. نر.م. و ګ. بریښن.
**برېښند** (brișánd) ص. نر.م. تېز، تېره.
**بریښندوکی** (breșandúkay) ص.نر.م. ۱) بریښ لرونکی، ځلند؛ ۲) څریکې کوونکی، سانګې کوونکی.
**بریښول** (breșawál) مص.مت. ۱) ځلول، پرقول، چرقول؛ ۲) دردول، خوږول، څوول.
**برېښول** (brișwál) مص. مت. ۱) تېزول، رندول، چالاکه کول، ۲) ګړندی کول، فعاله کول.
**بریک** (brék) نـر.م. ۱) د عراده‌جاتو د درولـو آله؛ ۲) د ربل ګاډي د سـامـان ډبه؛ ۳) په‌روان کـار کې د څه‌وخت لپاره ځنډ او تم کېده.
**بریکوټ** (barikóṭ) نـر.م. د بـري کلا، د سوبې کلا.
**بریلی** (bareláy) ښځ.م. هرکالیزه غوا، هغه‌غوا چې هرکال لنګېږي.
**بری لیک** (baraylík) نر.م. شهادتنامه، ډیپلوم.
**بریمن** (baraymán) ص. نر.م. بریالی، کامیاب.
**بری ناک** (barinák) ص. نر.م. بریالی، ګټندوی، فاتح.
**بړ** (báṛ) نر.م ۱) یو ډول ونه ده؛ ۲) د مرزانو مقابله یا شرط؛ ۳) د اوبو بړهار؛ ٤) ص.نر.م. مستعد، اماده، چمتو.
**بړادین** (baṛádin) نـر.م. بړدین، کـریسمس، د عیسی (ع) د پیدایښت ورځ.
**بړازګه** (bṛázga) ص. ښځ. م. ډنګره غوښه، خوار غوښه.

**بړاس** (baṛā́s) نر.م. (ج. بړاسونه) ۱) تپ، د اوبو بخار، تاو؛ ۲) غوسه، قهر، کاوړ.

**بړاس ایستل** (baṛāsistə́l) مص. مت. زړه تشول، زړه سړول.

**بړانجا** (bṛānjā́) ص. نر.م. مړیښن، مړجیننګا، مړجینک، . ناراسته، لټ، سست.

**بړاس دېګ** (bṛāsdég) نر.م. بخار دېګ.

**بړاس ماشین** (bṛāsmāšín) نر.م. د بخار ماشین.

**بړانده** (bṛāndá) ښځ.م. (ج. بړاندې) غړوسکه، بربابته، بړیقه، د اور لویه شغله یا لمبه.

**بړانګه**(۱) (bṛā́nga) ښځ.م. وړانګه شغله، پلوشه.

**بړانګه**(۲) (baṛā́nga) ښځ.م. (ج. بړانګې) ریتاړه، لیتاړه، چړی، ریښانګه، ریښکی.

**بړانګې بړانګې** (bṛāngebṛā́nge) ص. نب. ځیرې ځیرې، ریتاړې ریتاړې.

**بړبړ** (baṛbáṛ) ق. ۱) خوشالي او خندا؛ ۲) نر.م. ۱) د اوبو تالو وهل؛ ۳) په زوره خبرې.

**بړبړو** (baṛbaṛū́) ص. نب. ۱) په زوره غږېدونکی؛ ۲) بې ځایه خبرې کوونکی.

**بړبړی** (baṛbáṛay) نر.م. ۱) مست اوبه؛ ۲) په زوره غړېدل.

**بړبزی** (baṛbázay) نر.م. د نروز یا پسه د مستۍ په وخت کې اواز.

**بړبس** (baṛbás) نر.م. جلال، لویي، ستروالی، عظمت، دبدبه، شان و شوکت.

**بړبښکی** (buṛbuṣkáy) ښځ.م. و ګ. بړبوکی.

**بړبکی** (baṛbakáy) ښځ.م. و ګ. بړبوکی.

**بړبنګ** (buṛbáng) نر.م. ۱) یو غریز بوټی دی چې منغ یې دد وي؛ ۲) ناپوه او کم عقل سړی، کاواک.

**بړبوزه** (baṛbū́za) ښځ.م. سخته ړېږدنه، لړزېدنه.

**بړبوزی** (baṛbū́zay) نر.م. سختې او ترخې خبرې، ستغې خبرې، سپورې خبرې.

**بړبوکی** (baṛbūkáy) ښځ.م. ۱) دباد ګردله، ګرد باد، خوړینی؛ ۲) حباب، د اوبو د سر پوکنی؛ ۳) یو ډول بوټی دی.

**بړبه** (baṛbá) ښځ.م. امپه، دځناورو نیولو چل.

**بړبیته** (baṛbitá) ښځ.م. (ج. بړبیتې) تورانکه، تورکه، یوه توره مرغۍ ده.

**بړتېدل** (bṛatedə́l) مص. ل. بړچېدل، بړکېدل، په زوره خبرې یا خندا کول.

**بړچ** (bṛáč) نر.م. ۱) و ګ. پرنجی؛ ۲) غوسه، قهر، کاوړ؛ ۳) د ځنګلي مرغانو اواز.

**بړچا** (bṛačā́) ښځ.م. بړقا، په زوره خندا کول.

**بړچول** (bṛačawə́l) مص. مت. ۱) پرنجول، پرشول، ترنجول؛ ۲) بړبښول، ښوړول؛ ۳) ژړول.

**بړچی** (bṛáčay) نر.م. پرنجی، پرشی، ترینجی.

**بړستن** (bṛastán) ښځ.م. تلتک، شیرک، کنځړ.

**بړستن ګی** (bṛastangáy) ښځ.م. ۱) یوه مرغۍ چې د دېوالونو سوري لټوي او غنم خوري؛ ۲) کوچنۍ بړستن.

**بړغونج** (barğónj) نر.م. یو ډول پلې او ښځونه چې زیاتره په دوا کې استعمالېږي.

**بړق** (bṛáq) نر.م ۱) په زوره خندا؛ ۲) د رڼا پړک.

**بړقا** (bṛaqā́) ښځ.م. ۱) په زوره خندا یا خبرې؛ ۲) د رڼا پړکېده.

**بړق بړق** (bṛaqbṛuq) نر.م. ۱) خوټ خوټا، خوټېدنه؛ ۲) خټ خوټ، په ګډه خندا.

**بړقندی** (bṛaqánday) ص. نر.م. ۱) ځلېدونکی، ځلاند؛ ۲) ساده سړی.

**بړقول** (bṛaqawə́l) مص. مت. ۱) ځلول، ځلقول، چقول، پړقول؛ ۲) خندول.

**برقېدل** ( bṛaqedә́l ) مص. ل. بې تېدل، برچېدل، برکېدل، په زوره خبرې یا خندا کول.

**برمبکی** ( bṛambákay ) نـر.م. پتنګ، ګـودی، باجره، باد یوه، ګودي پران.

**برند** ( baṛánd ) ص. نر.م. چالاک، رند، چلنا ک.

**برنده** ( baṛánda ) ښځ.م. (ج. برندې) د اور لمبه چې لوګی ورسره وي.

**برنګ**(۱) ( baṛáng ) نر.م. دالان، برنده، سبوت.

**برنګ**(۲) ( bṛáng ) ص. نـر.م. ۱) حیران، وارخطا، مشوش، تکنی؛ ۲) پرنګ، د ژړا اواز.

**برنګای** ( bṛangā́y ) نر.م. دوه ښاخی، دو ښاخه، کوښه، کښه، د رېږي لېندې دوه ښاخی لرګی.

**برنګهار** ( bṛanghā́r ) نر.م. رینګا، رینګ، رینګه، د ماشوم پرله پسې ژړا.

**برنګی** ( baṛángay ) نر.م. مندانو، د مستو شاربلو آله.

**برنګۍ** ( baṛangáy ) ښځ.م ۱) د غره څوکه؛ ۲) رور، هغه تسمه چې مندانو ورباندې څرخوي.

**برنګې برنګولې** ( bṛangebṛangóle ) ص. نب. بهرته وروته، خلاصې دروازې.

**برنګېدل** ( bṛangedә́l ) مص. ل. ۱) د مېښې یا سندا رمبارې؛ ۲) په ژړغوني اواز خبرې کـول؛ ٤) حیرانېدل، هیښ کېدل؛ ٥) ژړا شروع کول.

**برنۍ** ( baṛnáy ) ښځ.م. تونکی، د زنګانه سترګه، د تونکي سر.

**برو** ( baṛū́ ) نـر.م. هغـه لـرګی چې تنسته ورباندې بیایي رابیايي (چلوي راچلوي).

**بروا** ( baṛwā́ ) ص.نـر.م. دلـه، دووس، بې غیـرته، بې شرم، د نامشروع فعل دلال.

**برواک** ( baṛwā́k ) ص. نـر.م. اواره، لـوڅـک، ایله ګرد، خوشکی، خوشې.

**بروالي** ( baṛwā́li ) ښځ.م. ۱) دله توب؛ ۲) دلالي.

**بروبن** ( bṛobә́n ) ص. نر.م. شونډور، هغه څـوک چې پړسېدلې او غټې غټې شونډې لري.

**بروت** ( bṛū́t ) نـر.م. شـ ږغشی، ښیکی، بېدول وابنه چې زېړې پاڼې لري.

**بروس** ( bṛū́s ) ص. نر.م. ج. مـرور، خفه، په قهر، تریو مخی، له غوسې نه پړسېدلی.

**بروستوب** ( bṛūstób ) نر.م. بروسوالی، بروستیا، تریو تندی نیونه، مرورتوب.

**بروکا** ( bṛokā́ ) ښځ.م. سلواغه، بوقه، بوکه، دولچه له کوهي نه د اوبه ایستلو لوښی.

**برول** ( bṛawә́l ) مص. مت. ۱) دمستی په وخت کې حیـوان له حیـواني یا ځناور لـه ځناورې سره پرېښودل؛ ۲) اوښ مستول

**برومی** ( baṛū́may ) نـر.م. ۱) اورنی، رونی، رنی، ورنی، د ماشوم د تړلو توکر؛ ۲) تومت، تور.

**بره** ( bára ) ښځ. م. (ج. برې) غرني وابنه دی.

**بره بره** ( baṛabára ) ق. ۱) په زور زور په اوچت اواز سره خبرې؛ ۲) ګډې وډې خبرې.

**برې** ( báṛay ) نر.م. (ج. برې) ۱) بورې، یوولس دزی توپک؛ ۲) ص.نـر.م. بوچی، هغه څـوک چې غوړونه او پوزه یې پرې شوي وي؛ ۳) هغه لوښی چې څنډې غاړې یا مورګې یې ماتې وي.

**برۍ** ( baṛáy ) ښځ.م. ونیا، له دالو یا سپینو کړو میو مرچ او مسالې نه جوړ شوی غونداری.

**بریا** ( baṛyā́ ) ص. ښځ. م. بـریا، لاس تـه راغلی، حاصل شوی.

**برېڅی** ( bṛécay ) ص. نـر.م. ۱) مـلګری، مل؛ ۲) د برېڅ قبیلې ته منسوب؛ ۳) تکره، مېړنی.

**برینجی** ( bṛinjáy ) نر.م. (ج. برینجي) ۱) برنجی توت، پوډول توت؛ ۲) د توتو ځوښا.

**بړينچغ** (barịncăğ) نـر.م. شاړنيګه، باڼيچغ، غينجلي، غينجلاکه.

**بړينګا**[1] (barịngā́) ص. نب. لټ، بې کاره، ټغبل.

**بړينګا**[2] (brịngā́) ص. نب. چپ سترګی، کوږ سترګی، بينګا، کاړينګ، بړينګی.

**بړينګک** (brịngák) نر.م ۱) سرباڼې، سرباندې، سربلاندې؛ ۲) بيني چوی، پېزواني.

**بړينګن** (brịngán) ص. نر.م. رينګن، ژړاند.

**بز** (báz) نر.م. ۱) نودې، توبرې، دوني نازکې لښتې؛ ۲) ور، وزګوری، وزګړ، وزيې پسه.

**بزاز** (bazā́z) نر.م. بجاز، د رخت خرڅولو دکاندار.

**بزازي** (bazā́zi) ښځ.م. د توکرانو خرڅولو دکان، د رختونو سوداګري.

**بزرګ** (bzárg) ص. نر.م. ۱) ولي، د برخې خاوند، نېک سړی؛ ۲) مشر، د پوخ عمر.

**بزرګوار** (bzargwā́r) ص. نر.م. لوی، مشر، ستر، نېک، ښه.

**بزرګه مياشت** (bzargamyā́št) ښځ.م. د رجب المرجب مياشت.

**بزرګي** (bzárgi) ښځ.م. ۱) وليتوب، خدای ته نژدېوالی؛ ۲) لويي، مشري، مشرتوب.

**بزغلی** (b(a,u)zğálay) نـر.م. زوغلی، څوغلی، تليسن، پنيری، کاږ، نهال.

**بزغنجر** (bazğanjár) ص. نر.م. کمزوری، ډنګر، بته، خوار، اېڼ.

**بزغی** (bazğáy) ښځ.م. غولنه، غولنکې، هغه دانه چې د سترګو پر ځيزمه راخېژي.

**بزکی** (buzkáy) نر.م. د مچيو يا نورو حشرو د الوتلو په وخت کې د وزرو اواز.

**بزګر** (bazgár) نر.م. (ج. بزګران) ښکورونږ، دهقان، کرندګر.

**بزل** (buzál) مص. مت. پيوندول، په جامو کې ټوټه اچول.

**بزم** (bazám) نر.م. ۱) مجلس، خبرې اترې، جرګه، د خوشالي مجلس؛ ۲) دغره څوريا لمن.

**بزمي** (bazmái) ص. نر.م. مجلسي، خوش طبع، د ميني او ساعت تېرۍ خبرې کوونکی.

**بزنه** (buzná) ښځ.م. پيوندونه، جامو ته ټوټه اچونه، پنو، بوټونو او څپليو ته پيوند اچونه.

**بزنی** (bazánay) ص. نر.م. ميرنی، ناسکه، ميرزی.

**بزونکی** (buzū́nkay) فا. نر.م. چميار، موچي، پنو، څپليو او بوټانو ته پيوند ايښودونکی.

**بزه**[1] (bzá) ښځ.م. ۱) وګ. وزه؛ ۲) شلېدلی بڅه، څېرې.

**بزه**[2] (bazá) ښځ.م. ۱) بايکمړ، يو غرنی بوټی يا ونه؛ ۲) پياو، کويه؛ ۳) ګناه، جرم، قصور.

**بزه ګار** (bazagā́r) ص. نر.م ۱) تنګ، اړ، محتاج؛ ۲) خجل؛ ۳) ګناهکار؛ ٤) لاس وهونکی.

**بزه ګارول** (bazagrāwál) مص. مت. تنګول، اړ کول، تربوزې راوستل.

**بژا** (bažā́) ښځ.م. بژ، بز، د اوبو د بهېدو اواز.

**بژانګه** (bažā́nga) ښځ.م. (ج. بژانګې) چغه، کړيکه، په زوره اواز.

**بژانګې بژانګوری** (bžāngebžāngū́ray) ص. نر.م. څېرې وېرې، ګارې وارې، ريتارې ريتارې.

**بژبژی** (bažbžáy) نـر.م. (ج. بژبژي) د اوبو يا د وينې په زوره دارې، بژندی، بغبغی.

**بژل** (bžál) مص. مت. ۱) بژه کول، څيرل، شلول؛ ۲) حلالول، وينه ويستل.

**بژندی** (bžánday) نر.م. بژبژی، بغبغی. له لرګي او تار څخه جوړه شوې اله چې تر تاو ورکولو او کښولو وروسته د بژ بژ اواز کوي.

**بږه** (bǝẓ́a) ص. ښځ. م. شلېدلی، څیرې، بزه.

**بږ** (báẓ) نر.م. د غوندارۍ اواز، د باد یا د بل توند او چټک تېرېدونکي اواز.

**بږبږانک** (baẓbaẓānák) نر.م. بږندی، بمبیری، بمبیری، دماشومانو د لوبو پرپرکی.

**بږبږی** (baẓbáẓay) نر.م. ۱) د باد اواز؛ ۲) بږبږانک.

**بږدنګی** (buẓdángay) ښځ. م. چرچنه، چنچڼ، چوغکه، چنچنه، یو ډول وړه مرغۍ ده.

**بږرکوالی** (bẓarkwālay) نر.م. ببروالی، ببرتوب، په قهرکې حملې ته د تیارۍ حالت.

**بږرکی** (bẓárkay) نر.م. ببر شوی، په غوسه کې حملې ته تیار.

**بږلی** (bẓálay) مف. نر.م ۱) بژه شوی، څیرې شوی، شلېدلی؛ ۲) حلال شوی، ذبح شوی.

**بږنول** (buẓnawál) مص. مت: بوږنول، ویرول.

**بږول** (bẓawál) مص. مت. توغول، شړل، په زور، غورځول چې اواز څنې ووځي، څیرل.

**بږوه** (bazáwa) ښځ. م. ترورۍ، لومبړه، بړوی.

**بږه** (buẓá) ص. نب. ۱) قتل، وژنه؛ ۲) قرباني، حلاله؛ ۳) څیرې ویرې، بژه.

**بږهار** (buẓhār) نر.م. د تیرې بغهار، د اوبو شرهار، د اوبو شنها، د اوبو شرپهار.

**بږی** (bẓáy) نر.م. (ج. بږي) د خورجین یا خورجی غوندې کڅوره.

**بږی** (báẓay) نر.م. (ج. بږي) کورندی، د بدن د کوم غړي وېده کېدل یا مېږي مېږي کېدل.

**بږېدل** (buẓedál) مص. ل. ۱) بغهار کول؛ ۲) په قهر سره د کار پیلېدل؛ ۳) څیرې کېدل، بژه کېدل؛ ۳) څیرې شوی، بژه شوی.

**بس** (bás) نر.م. ۱) د سورلۍ لوی موټر ۲) ق. پوره، کافي، بشپړ؛ ۳) فقط، یوازې؛ ٤) چپ، غلی؛ ۵) وس، واک، اختیار.

**بس بس** (basbás) ق. غلی شه! مخاطب ته د بس کولو امر.

**بسپنغاړی** (baspanğāŕay) چنده ټولوونکی.

**بسپنه** (baspána) ښځ. م. (ج. بسپنې) اعانه، ګړده، چنده، مرسته.

**بسپه** (baspá) ښځ. م. ذره، لږڅیز، ختوسکی.

**بست** (bást) نر.م. (ج. بستونه) ۱) ځای، مقام، درجه؛ ۲) اسباب، بستره.

**بستر** (bistár) ښځ. م. بستره، د وېده کېدو اسباب؛ ۲) په روغتون کې د ناروغ داخلېدنه.

**بستربند** (bistarbánd) نر.م. د بسترې تړلو او مضبوطولو شی، د سفري بسترې تړلو شی.

**بستره ییز** (bistarāyíz) ص. نر.م. د څو بسترو، د یو شمېر بسترو لکه لس بستر ییز روغتون.

**بستري** (bistári) ص. نب. په روغتون کې داخل شوی، بستر شوی ناروغ.

**بستوب** (bastób) نر.م. ۱) بسېدنه، پوره والی، پوره توب، بس والی؛ ۲) صبر، قناعت.

**بسته** (bastá) ق. ۱) بس، مه کوه؛ ۲) پربکړی؛ ۳) پوره، بشپړ، تول؛ ٤) ښځ. م. د کتابو او کتابچو وړلو لاسي بکس؛ ۵) د کاغذونو بنډل یا ګېډی؛ ٦) د بیالی مور؛ ۷) د دروازې یا کړکۍ تخته چې ښکته پورته کېږي.

**بسته الف** (bastá alif) نر.م. د پولیسو په دفتر کې د جنایتکارانو د ثبت دوسیه یا کتاب.

**بسته بی** (bastábe) ښځ. م. و ګ. بسته الف.

**بسته کار** (bastakār) فا. نر.م. میخانیک، فني او تخنیکي کارګر، وستکار.

**بسته کاري** (bastakāri) ښځ. م. د تخنیکي او فني کارګر وظیفه، د میخانیک دنده.

بسره (basrá) ښځ. م. يوه ښکاري مرغی ده.
بسکر (baskár) نر. م. اشر، پګړه، بې اجوري ديوه کس لپاره دله ييز کار.
بسکر (báskar) ص. نر. م. اجرتي قاتل، هغه سړی چې په بيه وژنې کوي.
بسکره (baskára) ښځ. م. و ګ. اشر.
بسکوټ (biskóț) نر. م. بيسکيټ، د کلچې په شان خواړه دي.
بسمک (basmák) نر. م. ټاکو، د ښاروبو يو ډول سخته ناروغي ده. څمکې وهنه هم ورته وايي.
بسمل (bismíl) ص. نر. م. قربان شوی، حلال شوی.
بسمه (basmá) ښځ. م. ۱) وسمه، د وينښتو رنګ؛ ۲) ذره، ختيوسکی، پوتسکی، خځوځکی.
بسمې بسمې (basmebásme) ص. نب. ۱) څيری ويرې، دونګې دونګې؛ ۲) ذرې ذرې.
بسنت (basánt) نر. م. ۱) پسرلی، څرمونی، د کال لومړی فصل؛ ۲) د هندوانو يو ډول ميله ده؛ ۳) دموسيقي راګ.
بسنتۍ (basantáy) ښځ. م. پايلې، پايزيب، داګانه د ښځا لپاره پښو ته هم اچوي.
بسندی (basánday) ص. نر. م. بسنی، قانع، صابر، صبرناک، بې لالچه، موړسترګی.
بسنډول (basandúl) نر. م. ۱) حيله، مکر، فريب؛ ۲) ګنه ګونه، ټهل ماټهل.
بسنه (basána) ښځ. م. کفايت، بستوب.
بسو (basú) ص. ښځ. م. ۱) قانع (ښځه)، صابره، صبرناکه؛ ۲) هوښياره او کارګره مېرمن.
بسواسه (biswā́sa) ښځ. م. د بسوې شلمه برخه.
بس والا (baswālā́) نر. م. ۱) د سرو بس څښتن؛ ۲) فا. نر. م. بس کوونکی، ختموونکی.
بسوالی (baswā́lay) نر. م. و ګ. بستوب.
بسوه (biswá) ښځ. م. د يو جريب شلمه برخه.
بسی (básay) نر. م. د اروا سيوری.
بسۍ (basáy) ښځ. م. شاړه ځمکه چې کښت په کې نه کېږي.
بسيا (basyā́) ص. نر. م. ۱) استوګن، مېشت، دېره؛ ۲) کافي، پوره، بس، ډېر؛ ۳) صبرناک؛ ٤) مشغول، اخته، لګيا.
بسيا کول (basyākawál) مص. مت. مېشتول، ابادول، دېره کول.
بسېدل (basedál) مص. ل. ۱) کفايت کول، بس کېدل؛ ۲) بشپړېدل، پوره کېدل، ختمېدل.
بسيط (básit) نر. م. پراخه، غوړېدلی، ساده.
بسيۍ (basayáy) ص. ښځ. م. تنګه، تېتنګ، کراړه ځمکه، کونی، درينګ.
بش (bā́š) نر. م. ويشه، تير، شاه تير، نشتر.
بشاړې (bišā́ṛe) ښځ. م. پيشاړې، ملنډې، توکې، ريشخند.
بشپ (bišáp) نر. م. لوی پادري، د عيسويانو مذهبي مشر.
بشپړ (bašpáṛ) ق. کامل، پوره، تمام، ټول، ټوله.
بشپړاند (bašpaṛā́nd) نر. م. بشپړوونکی، متمم.
بشپړاند توک (bašpaṛā́ndtók) نر. م. بشپړوونکی توک.
بشپړاندکړ (bašpaṛā́ndkáṛ) بشپړوونکی فعل.
بشپړاوسترمهال (bašpaṛostarmahā́l) نر. م. مطلقه راتلونکی زمانه.
بشپړتوب (bašpaṛtób) نر. م. بشپړتيا، پوره والی، تکميلېدنه، تمامېدنه، پوره کېدنه.
بشپړتېرمهال (bašpaṛtermahā́l) ق. مطلقه ماضي.
بشپړک (bašpuṛák) نر. م. پوخنا، هغه ماشوم چې په وړو کوالي کې پخې خبرې کوي.

**بشپړه غونډله** (bašpaṛaǧónḍla) ق. ښځ.م. مکمله جمله، هغه جمله چې ذ اړتیا وړ ټول گرامري توکي راواخلي

**بشپړېدونکی** (bašpaṛedúnkay) مف. نر.م. تمامېدونکی، سرته رسېدونکی.

**بشر** (bašár) نر.م. بنیادم، انسان.

**بشرپالنه** (bašarpālána) ښځ.م. بشردوستي.

**بشرپالونکی** (bašarpālúnkay) ص.نر.م. (ج. بشرپالونکي) بشردوست، بشرپال، هغه څوک چې له بشر سره مینه لري.

**بشرپېژندنه** (bašarpežandána) ښځ.م. انتروپولوجي، بشر شناسي، انسان پېژندنه.

**بشرپېژندونکی** (bašarpežandúnkay) فا.نر.م . بشر شناس،انسان پېژندونکی

**بشردوست** (bašardóst) ص. نر.م. و گ.: بشرپالونکی.

**بشرواله** (bašarwāla) بشرولی، بشرپالنه.

**بشرویه** (bašrúya) ص. ښځ.م. مخوره، ګلالۍ، ښایسته، ښکلې، تکه سپینه.

**بشره** (bašrá) ښځ.م. (ج. بشرې) څېره، بڼه، گونه، شکل ،صورت ، قیافه، مخ.

**بشکال** (bašakāl) نر.م. ١) پشکال، د اړاو بادرو ترمنځ میاشت؛ ٢) د بارانونو موسم.

**بشکالي** (baškāli) ص. نب ١) پشکالی، د بارانونو کال، ودان کال؛ ٢) دبشکال.

**بشکه** (báška) ښځ.م. یو ډول سارانې سابه دي.

**بشنج** (bašánj) نر.م. شهرت، عزت.

**بشه** (bisá) ښځ.م. (ج. بشې) مرزه، بتهره، بیشه.

**بشیر** (bašír) ص. نر.م. ١) زیری کوونکی؛ ٢) ښایسته؛ ٣) شوکور.

**ښباند** (baṣānd) نر.م. ډېر بخښونکی، غفار.

**ښباوو** (baṣāwú) فا.نر.م. بخښاوو، بخښونکی.

**ښبتګه** (baṣátga) ښځ.م. چنې، د کوتې چنې، وسه، هغه لرګي چې د تیرانو د پاسه اچول کېږي.

**ښبکوله** (baṣakóla) ښځ.م. (ښبکولې) بده واقعه غمجنه پېښه، ترخه حادثه.

**ښبګلوي** (baṣgálwi) ښځ.م ١) ارامتیا، هوسایي، هوساینه؛ ٢) امن، امنیت.

**ښبنل** (baṣál) مص. مت. و گ. بخښل.

**بصارت** (basārat) نر.م. ١) بینایي، دید، لید، نظر؛ ٢) پېژندګلوي، پېژندنه.

**بصر** (basár) نر.م. ١) سترګې؛ ٢) عقل، بصیرت.

**بصیر** (basír) ص. نر.م. ١) سترګور؛ ٢) ځیرک، پوه، هوښیار.

**بصیرت** (baiṛát) نر.م. ١) لیدنه ،کتنه؛ ٢) ځیرکي هوښیاري؛ ٣) سترګورتوب.

**بصیرمن** (basirmán) ص.نر.مد بصیرت خاوند، څارونکی، په غور سره کتونکی.

**بطریه** (bataryá) ښځ.م. د توپچی له څو بلوکونو څخه جوړه ده چې د ټولي معادل ده.

**بطرۍ** (bıtráy) ښځ.م. بیترۍ، بالتۍ، لکه د راډیو، ټایپ ریکارډر او نور.

**بطلان** (butlān) نر.م. باطلېدنه، بېکاره کېدنه، له ګټې نه وتل.

**بطن** (bátn) نر.م. نس، ګېډه، خېټه.

**بطني** (bátni) ص. نب. د خېټې، د ګېډې، د نس، د بطن، خېټې ته منسوب.

**بطي** (báti) ص. نب. سست، ورو، په ځنډ.

**بعد**[1] (básd) ق. وروسته، پس، ورپسې.

**بعد**[2] (busd) نر.م ١) لرېوالی، فاصله؛ ٢) د جسم بعد لکه د مستطیل دوه بعده (اوږدوالی ،سور)

**بعضې** (baszé) ق. ځینې، څه، یو څه.

**بعید** (báyid) ق. لرې، لیرې، وریا.
**بغ**[۱] (bắg) ۱) خدای، ایزد، لسوی ۲) بت؛ ۳) نـر.م. بادخور، کب خور، یو ډول مرغه دی.
**بغ**[۲] (bug) نر.م. (ج. بغهار) ۱) کریکه، چیغه، بغا، د ژړا اواز؛ ۲) ص.نر.م. تریو تندی، تروش.
**بغا** (bugắ) ښځ. م. بغ اواز، خپ خپی اواز.
**بغاره** (bgắra) ښځ. م. (ج. بغارې) چیغه، کریکه، کریغه، ناره.
**بغاند** (bgắnd) ص.نـر.م. بغانی، ژړاند، رینګن، ژړاند، هغه ماشوم چې ډیره ژړا کوي.
**بغاوت** (bağawắt) نـر.م. سرکښي، یاغیتوب، نافرماني، باغیتوب، له قانون نه مخالفت.
**بغ بغای** (bağbağáy) نـر.م. ۱) بغ بغي، هارن، د لارۍ یا موټر هارن؛ ۲) ژړا، بغا.
**بغبغو** (bağbağū) نر.م. یو ډول مارغه دی.
**بغبغی** (buğbuğáy) نر.م. ۱) هـارن؛ ۲) ججوره.
**بغدادي** (bağdắdi) ښځ. م. هغه برستن چې په درې کونجه ډول ګندله شوې وي.
**بغدادی قاعده** (bağdắdayqắşida) ښځ. م. د الف و ب سیپاره..
**بغدادی کوتره** (buğdắdaykawtára) ښځ. م. یو ډول کوتره ده، چې تر نورو کوترو غټه وي.
**بغدر** (bağdár) نر.م. میل، د سپورټ د لوبې کوتک.
**بغرګ** (bğárg) ص. نر.م. و ګ. غبرګ..
**بغرنج** (buğránj) ص. نـر.م. مشکل، کړکیچن، انجړ بنجړ، ګډوډ.
**بغره**[۱] (buğrá) ښځ. م. (ج. بغرې) برقع، بورقـه، بوقره، بوکره، شادري.
**بغره**[۲] (bağára) ښځ. م ۱) دسوی غار، سندغولی؛ ۲) بغری، هغه ژوره شوې تیره یا اوسپنه چې اوربشې، شولې په کې تکول کېږي.

**بغری** (bağráy) ښځ. م. ۱) بغره، د شولـو، بتو یا درملو د تکولو یا میده کولو لوښی؛ ۲) بدکاره ښځه؛ ۳) د کنځلو په ډول استعمالېږي.
**بغرې** (báğre) ص. ښځ. م. د سترګـو صفت، ژورې ورې او نکری سترګې.
**بغسه** (bağắsa) ښځ. م. ګورګوتی، ګورګتی، هغه حیوان چې مړی راباسي او خوري یې.
**بغض** (buğz) نر.م. کینه، رخه، حسد.
**بغکی** (buğkáy) نر.م. چیغه، د ژړا اواز.
**بغل** (bağál) نر.م ۱) تخرګ، ترخ؛ ۲) ځنګ، غاړه.
**بغل کشي** (bağalkắši) ښځ. م. روغبړ، سترې مشې او ښه راغلی کونه.
**بغلي** (bağáli) ص.ښځ. م. یوځای، ګډ، غاړه غړی، ځنګ په ځنګ.
**بغمه** (buğmá) ښځ. م. بوغمه، د حیواناتو یو ډول ناروغي ده.
**بغن** (báğun) نر.م. اننګی، بغور، باړخو، کوکی، کوګی، غومبوری، بغون.
**بغنی** (bağánay) نـر.م. (ج. بغني) یو ډول پیور بوټی چې ژېړ ګلونه لري.
**بغوټ** (buğwắt) نر.م. (ج. بغوټونه) تناسلونه، د غاړې غوټې.
**بغول**[۱] (buğawál) مـص. مت. چغـول، په چغـو کول، ژړول، په زور ځني اواز ایستل.
**بغـول**[۲] (bağawál) مص. مت. ۱) هـارن کول؛ ۲) ځه ځیز ارتاوول (غورځول).
**بغوونی** (bağawū́nay) نر.م. ۱) هارن کوونکی؛ ۲) شـپېلي وهـونکی؛ ۳) په سـتووه (پهش قبضه) سوری کوونکی.
**بغهار** (bağahắr) نـر.م. ۱) فـریاد، زګېروی؛ ۲) د کوچنیانو یا د ګډو اوازونه.

**بغی** (buğáy) نر.م. (ج. بغي) توبکی، دېګ، توبکي، پوپک، دولۍ، د لښتې پوټکی چې منځ یې تش دی او کوچنیان د غنمو وړې وړې مردکۍ په کې پوکوي او شپیان ورباندې ولي.

**بغۍ** (bağáy) ښځ.م. ۱) شپېلۍ، تولۍ، دروی، نی، بین؛ ۲) ښکر، تورم، بګل، ناقوس.

**بغې بغو** (bağebağú) ښځ.م. ژړا انګولا، ژړا، فریاد، شور وغوغا.

**بغېدل** (bağedál, buğedál) مص. ل. ۱) ژړېدل، بغارې کول، فریاد کول، چغې وهل.

**بغیر** (bağáyr) ق. سوا، بې له دې، پرته، بدون.

**بغیر** (bağáyṛ) ص.نر.م. بدګومان، شکمن، بدظن، مشتبه، بدګمانه.

**بغېړنه** (bağeṛána) ښځ.م. ۱) بدګوماني، تردد؛ ۲) ص. ښځ.م. شکمنه، بدګومانه.

**بقا** (baqá) ښځ.م. دوام، همېشګي، پایښت، د زیات عمر لپاره پاتې کېدنه.

**بقال** (baqál) ص. نر.م. (ج.بقالان) ۱) سبزي او ترکاري خرڅوونکی؛ ۲) د غله جاتو خرڅوونکی؛ ۳) پنجارګر.

**بقایا** (baqāyá) ښځ.م. (جم بقایاوې) پاتې شونه، پاتې شونې، باقي، د پور باقي برخه.

**بق بق** (baqbáq) نر.م ۱) پوچه وینا، عبث خبرې؛ ۲) په کړس کړس خندا.

**بوقچه** (būqčá) ښځ. م. (ج. بوقچې) بوخچه یا بخچه، بخچکۍ.

**بکا** (baká) ښځ.م. خړپوخې، خپوړې، خاپوړې.

**بکارت** (bakārát) نر.م. پېغلتوب، بچرتوب، د ښځو، تر واده د مخه حالت ته بکارت وایي.

**بکاري** (bakári) نر.م. استازی، قاصد، ځری، پیغام وړونکی، خبررسوونکی.

**بکال** (bakál) ص. نر.م. ۱) هوښیار او چالاک؛ ۲) نر.م. ښنګېدنه، زمزمه، زنګېدنه.

**بکانه** (bakāṇa) ښځ.م. بکیانه، یو ډول ونه ده.

**بکاو** (bikáw) ص.نر.م. دخرڅولو لپاره، د خرڅولو وړ.

**بکاول** (bakāwál) نر.م. اشپز، پخوونکی.

**بکبک** (bakbák) نر.م. تور مرچ، فلفل.

**بکبکی** (bakbákay) نر.م. ۱) پس پسی، په غوږ کې پټې خبرې؛ ۲) عبث او بې ځایه خبرې.

**بکر** (bakár) ښځ.م. (ج. بکرې) بکره، چقماق، بکرې، اورتېک، د اور لګولو یو ډول تیږه ده.

**بکرم** (bukrám) نر.م. هغه پېړ توکر چې د کرتې د مخ او استر ترمنځ اچول کېږي.

**بکره** (bıkrá) ص. ښځ.م. (ج. بکرې) ۱) پېغله، نا واده شوې ښځه؛ ۲) بوکه، سلواغه، ډولچه؛ ۲) بورقه، بوقره، چادري.

**بکری** (bakráy) نر.م ۱) وز. نرچېلی، وزګوری؛ ۲) له پوزې نه جوړه شوې کجاوه.

**بکرۍ** (bakráy) ښځ.م ۱) بکر؛ ۲) د میچنې لاندنی پل؛ ۳) کنډ، چیړ، هغه وچه ژاوله چې په ونې پورې نښتې وي.

**بکري** (bıkri) ښځ.م. سودا، خرڅون، پېرودنه او پلورنه.

**بکړ** (bakáṛ) و ګ. بلندره.

**بکس** (báks) نر.م. ۱) پېټۍ، صندق؛ ۲) د شربت یا بل اوبلن څیز پاتې شونې برخه او خیرې؛ ۲) لږ، کم، لږکوټی، پوټسکی، ذره.

**بک سترګی** (bakstárgay) ص. نر.م. ۱) نبغ سترګی؛ ۲) بې شرم، بې حیا.

**بکسکی** (bakáskay) ص. نر.م. لږ شان، لږ، یوڅه، کم.

**بکسوه** (baksẃa) ښځ.م. فینګ، پینګ.
**بکل** (bakә́l) نر.م. غکل، د وزو اواز.
**بکواس** (bakwā́s) نر.م. چټي خبرې، عبث خبرې.
**بکوړه** (bakóṛa) ښځ.م. بګوړه، کورت، قروت.
**بکېدل** (bakedә́l) مص. ل. ۱) پوچ غږېدل، بې ځایه خبرې کول؛ ۲) د بزو اواز.
**بکېړه** (bakéṛa) ښځ.م. جنجال، جګړه، فساد، لانجه، فتنه.
**بګ** (bág) ص. نر.م. ۱) غټ او جګ، مضبوط؛ ۲) ناپوه، کم عقل؛ ۳) لک ځک.
**بګار** (bagā́r) نر.م ۱) جغجغا، په غوړیو کې د پیازو د سرو کېدو اواز؛ ۲) یو ډول لوبه؛ ۳) نوکاره، تونګاره، ګروش.
**بګارول** (bagārawә́l) مص. مت. نوکارې لګول، تونګارې لګول، ګروشییل، شوکارې کول.
**بګاري** (bagā́ri) نر.ج. په اوبو کې خوټول شوي سابه، ایشولي سبزیجات.
**بګاړ** (bagā́ṛ) نر.م. ۱) ناتار، هغه ډوډۍ چې په تودو کړو شړومبو کې ماته شوې وي؛ ۲) زوذات، اولاده، کورمه.
**بګاښ** (bagā́ṣ) نر.م. منځګړتوب، منځګړتیا، ګواښ، د دوو خواوو ترمنځ سوله کونه.
**بګاښچي** (bagā́ṣči) فا. نر.م. منځګړی، سوله کوونکی، ګواښ کوونکی، بګاښ والا.
**بګت** (bagát) ص. نر.م. ۱) خوشکی، بدچلند؛ ۲) زیات سوالګر؛ ۳) دخوشالۍ مجلس.
**بګتو** (bagatū́) ص. نب. ۱) هغه شاعر چې بګتۍ جوړوي؛ ۲) سازنده، مجلسي.
**بګتۍ** (bagatә́y) ښځ.م. په پښتو اشعارو کې بګتۍ د بدلو او چاربیتو په څېر کسر لري، خو کسر یې معمولاً یو بیت وي.

**بګتې** (bagáte) ښځ.م. نخرې مخرې، اونې بونې، ناز ماز، نخرې پخرې، خرېندې مرېندې.
**بګر** (bagár) نر.م. رسم و رواج، دود و دستور؛ پروا، شرم.
**بګری** (bagrә́y) ص. نر.م. غریب، خوار، لوځ لغړ، بې وسه، بې وزله، بې وزلی.
**بګړی**[1] (bagṛә́y) ښځ.م. ۱) پګړی، پټکی، دستار؛ ۲) مړه کېدنه، مړینه.
**بګړی**[2] (bugṛә́y) ښځ.م. ګګڅی، کروړی، چیچړی، چچونی.
**بګلولی** (baglū́lay) ښځ.م. بوسلا، بګیلی، شیشکه، خیالي بلا.
**بګلی** (buglә́y) نر.م. هغه تور سپین مرغه، چې د اوبو پر غاړه کښېني.
**بګڼ** (bugә́ṇ) نر.م. غټ تور مچ، خرمچ.
**بګڼول** (bugṇawә́l) مص. مت. و ګ. بړنول.
**بګورې** (bagóre) ښځ.م. ۱) غوربدلو او د سپي حملې؛ ۲) چیغې، لکه څه بګورې وهي.
**بګوري** (bagū́ri) ښځ. م. ۱) د ونې نرۍ څانګې؛ ۲) پرېشان ویښته، ګډې وډې څڼې.
**بګوړا** (bagū́ṛā) ښځ. م. پوڅه، خېدک، خام پنېر.
**بګوړه** (bagoṛá) ښځ. م. ۱) کورت، قورت؛ ۲) ص. نب. ۱) بګېل، تنبتېدل؛ ۲) له کار، او عسکرۍ نه تښتېدلی؛ ۳) بې غیرته.
**بګوړی** (bagóṛay) نر.م. د غوا یا مېښې بچی (ګوړه کی، خوسکی، سخوندرکی، کټی).
**بګوزی** (bagózay) نر.م (ج. بګوزي) د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.
**بګوله** (bagolá) ښځ.م (ج. بګولې) کتاره، کټوره، هغه پیوړ، غوا چې نه څوک لوشلو ته پرېږدي او نه خپل بچي رودلو ته.

**بګه** (bága) ښځ. م. (ج. بګې) پرتوغاښې، پرتوګاښې، لال، ګنده.

**بګی** (bágay) نر. م. (ج. بګي) ایجرا، نرښځی.

**بګۍ** (bagáy) ښځ. م. ګاډی، ټانګه.

**بګېړکه** (bageráka) ښځ. م. (ج. بګېړکې) د ییوې متې، موټانې، موټۍ، موټی.

**بګېل** (bágel) ص. نر. م. ۱) بګېلی، تنبتېدلی مرز؛ ۲) په جګړه کې ماتې خوړل.

**بګېلی** (bágelay) نر. م. ۱) وګ.: بګېل؛ ۲) سړي خور، ادم خور، شیخي، بووبلا.

**بګینه** (baginá) جن. ګیینه، شات، ګبین.

**بل**[۱] (bál) ص. نر. م. ج. ۱) لګېدلی، بل شوی، رڼا شوی؛ ۱) پسې، ورپسې، په لومړي پسې دوهم؛ ۲) بېګانه، پردی، غی.

**بل**[۲] (bıl) نر. م. د اخیستل یا پیرودل شوي مال سند، چې د مال ټاکلې بیه په کې لیکل شوې وي.

**بلا** (balā́) ښځ. م. ۱) افت، غم، مصیبت؛ ۲) خیالي شیشکه؛ ۳) ګرانه، تکلیف؛ ٤) کرکه، نفرت؛ ٥) ص. نب. زیات، ډېر.

**بلابتر** (balābatár) نر. م. ګډوډ شیان، یو شی بل شی، بې کاره او کم ارزښته شیان.

**بلا پسې** (balāpáse) ص. نب. ۱) بې پروا، غیر جدي؛ ۲) تېر، هېر؛ ۳) ځنې تېر شه.

**بلاربوالی** (blārbwā́lay) نر. م. امیدواري، بلاربېدنه، حامله ګي، حامله توب.

**بلاربه** (blārbá) ص. ښځ. م. (ج. بلاربې) ډکه، ټنډه، امیدواره، حامله.

**بلاره** (bulā́ra) ښځ. م. (ج. بلارې) ۱) د مرزانو نیولو جال؛ ۲) ناره یې مرز.

**بلاغت** (balāğát) نر. م. سوچه وینا، له مانا او مطلب نه ډکه وینا، د وینا لوړه درجه.

**بلاغواړی** (balāğwā́ṛay) نر. م. بلاغوښتونکی، بلاجو، ماجراجو.

**بلاغونډ** (balāğwánḍ) نر. م. ۱) د خولې د نسوارو کډو؛ ۲) لاټی، ډانګ، ډنډه.

**بلاک** (blā́k) نر. م. ۱) د کورونو، دوکانونو او پارتمانو لړ؛ ۲) قالب؛ ۳) ډله؛ ٤) له سیمټو او باجري څخه جوړه شوې خښته.

**بلاکش** (balā́kaš) ص. نر. م. تکلیف زغمونکی، ستونزې ګالونکی، تکړه.

**بلاګی** (balā́gay) نر. م. ۱) وران هلک؛ ۲) وړه بلا؛ ۳) مجازاً د ښځې او نر جنسي آلې.

**بلالګۍ** (balālgáy) ښځ. م. بلاګۍ، هغه ښځه یا حیوانه چې کال په کال لنګېږي.

**بلاناغه** (bılānāğá) ق. نه قضا کېدونکی، بې ځنډه، بې وقفې، پرله پسې، متواتر.

**بلاند** (balā́nd) ص. نر. م. بلېدونکی، بلوونکی.

**بلانده** (blāndá) ښځ. م. (ج. بلاندې) نوې پېغله، پېغلوکې، پېغلګې، پېغلوټې.

**بل اندی** (balānday) نر. م. ازاد اندی، ازاد خیاله.

**بلانګوړی** (blāngū́ṛay) نر. م. (ج. بلانګوړي) یو ډول موږک دی.

**بلانۍ** (blā́nay) ښځ. م. وروښی، غوروښی، وراګړي، ورابانې، واده ته راغوښتل شوې ډله.

**بلانه** (bilāṇá) ښځ. م. زګېروی، ستهنګی، ستمې، ستم، د ناروغ فریاد.

**بلاواسطه** (bilāwāsitá) ق. مخامخ، مستقیماً، نېغ په نېغه، په خپل لاس، بېواسطې.

**بلاوه** (bulāwá) ښځ. م. غلطي، تېروتنه، سهوه، خطا، خطاوتنه.

**بلاوهلی** (balāwahláy) ص. نر. م. ۱) لټ، تنبل؛ ۲) بېکاره، وزګار؛ ۳) غمجن، غم ځپلی.

**بلب** (bálb) نر.م. ۱) بلپ، ځراغ؛ ۲) د موټر ځراغ.

**بلبل** (balbál) ص. نر.م. ځلېدونکی، پرکېدونکی، ځلاند، ځلبل.

**بل بل** (balbál) ص. نر.م. ډول ډول، رنګ رنګ، مختلف.

**بلبل** (bulbál، balbál) نر.م. (ج. بلبلان) چوني، بلبله، یوه مرغۍ چې ډېر په زړه پورې اواز لري.

**بلبلک** (balbalák) نر.م. د انګورو د تاک د وچېدو ناروغي.

**بلبلکه** (balbláka) ښځ. م. (ج. بلبلکې) کاغی، کاغه، یوه ښکلې مرغۍ ده.

**بلبله** (balbála) ښځ. م. (ج. بلبلې) ۱) عندلیب، بلبل؛ ۲) یوه توره مرغۍ ده چې اوږده لکۍ لري ۳) معشوقه؛ ٤) د پښتنو یو ډول اتڼ.

**بلبلی** (balbálay) نر.م. (ج. بلبلي) مشعل، ځراغ، لګېدلې شونتی، بل شوی ځراغ.

**بلځایګه** (baljāygá) ښځ. م. بېګانه، پردی، د بل ځای، بهرنی.

**بلځایي** (baljāyi) پورژلی، بهرنی، اوپره، باندنی.

**بلچک** (balčák) نر.م. یو ډول واښه چې سره ګلان کوي.

**بلخه** (balxá) ښځ. م ۱) د جولا تانسته؛ ۲) اساس، بنسټ.

**بلد** (baládْ) ص. نر.م. ج. اشنا، واقف، شناخته.

**بلدتیا** (baladtyā) ښځ. م. پېژندګلوي، شناخت.

**بلدوزر** (buldozár) نر.م. یو غاښور ماشین د لوړو ژورو د اوارولو لپاره کارترې اخیستل کېږي.

**بلدول** (baladawál) مص. مت. اشنا کول، اموخته کول، روږدی کول.

**بلدي** (haládi) ښځ. م ۱) وګ. بلدتیا؛ ۲) ص. نب. ښاري؛ ۳) اشنا، بلد.

**بلدی** (baladay) ص. نر. (ج. بلدي) اموخته، اشنا شوی، روږدی، واقف.

**بلدیه** (baladiyá) ښځ. م. (ج. بلدیې) ښاروالي، هغه موسسه چې ښاري چارې پرمخ بیایي.

**بلډینګ** (bildéng) نر.م. (ج. بلډینګونه) قصر، لوړه ماڼۍ، څو پوړیزه ودانۍ.

**بلرغو** (bilargū) ص. نر.م. ناموافق، مخالف، ضد.

**بل سبا** (balsabā) ق. ـ سبا نه بل سبا، له نن وروسته دریمه ورځ.

**بل شان** (balšān) ص. نب. بل ډول، بل راز، بل څېر، بل قسم، بل رنګ، بل شانته.

**بلښل** (blašál) مص. مت. ماشوم په وروني کې ترل.

**بلغار** (balğār) نر.م. الویش، وږمه، ربنه، نسیم، بلغار باد، د پسرلي نرم باد.

**بلغاري** (bulğāri) ص. ډېرې شیدې کوونکې.

**بلغاک** (balğāk) نر.م. ځوږ، شور، چغې، فریاد.

**بلغاکي** (balğāki) ښځ. م. شور، ځوږ، فریاد.

**بلغږ** (balğáz) نر.م. د یوه غږ (فونیم) څرمه ډول، الوفون، واژګونه.

**بلغم** (balğám) نر.م. ج. خراچکی، خراشکی، خرپ، خروشکی، ګرویېله.

**بلغمي** (balğámi) ص. نب. ۱) څوک چې بلغم یا خراشکی لري؛ ۲) بلغم پیدا کوونکی څیز.

**بلغمي پیاله** (balğamipyāla) ښځ. م. د چای چښلو یو ډول چیني بې لاستي پیاله ده.

**بلغمي تبه** (balğamitába) ښځ. م. د ناروغ په سینه کې ډېر بلغم له امله تبه کول.

**بلغمي جلاب** (balğamijūláb) نر. ج. ناروغ ته د بلغمو د لرې کولو لپاره جلاب ورکول.

**بلک** (bálk) نر.م. ځلق، ځلا، ځلېدنه، پرک.

**بلکه** (balká) ښځ. م. د اور لمبه، یو څه اور بلونه.

**بلکې** (balké) ربط، خو، مګر، مثلاً، مطلب دا چې، ګويا.

**بلکۍ** (balkáy) ښځ. م. د غاښونو د راشنو کېدو پر وخت د کوچنيانو نس ناسته.

**بلګ** (bálg) نر. م. پاڼه، پڼه، دونې.

**بلګړ** (balgáṛ) نر. م. د يوه ګړ (فونيم) ځرمه دول، الومورف.

**بلګک** (balgák) نر. م. ۱) يو ډول وچ شان بوټی؛ ۲) د طلاو ګلونه چې له نتې نه راځوړند ښکاري.

**بلګه** (bulgá) ښځ. م. بولګه، درک، سراغ، ښېلګه، د ورک شوي شي نښې نښانې.

**بل ګهيځ** (balgáhij) ق. و ګ. بل سبا.

**بلل** (balál) مص. مت. راغوښتل، دعوت کول، يادول، چاته ناري يا غږ کول.

**بللګۍ** (balalgáy) ښځ. م. ۱) هغه ښځه چې کال په کال اولاد زېږوي؛ ۲) هغه څاروي چې کال په کال لنګېږي.

**بللی** (balálay) مف. نر. م. (ج. بللي) راغوښتل شوی، دعوت کړی شوی، مېلمه شوی.

**بلم** (balám) نر. م. وړه نېزه، شلګی، بلمه، بله.

**بلمګی** (balmágay) ص. نر. م. ۱) بې مالګې، بې نمکه؛ ۲) بد قواره.

**بلمنګتوب** (balmangtób) نر. م. بلمنګ والی، بلمنګتيا، بې خوندي، بې نمکي، بلمنګي.

**بلمېغ** (balmég̱) ص. نر. م. ۱) بې مالګې سړی؛ ۲) پک، ګنجی؛ ۳) تېری، زياتی، ظلم.

**بلنپېر** (balánper) نر. م. ندائيه حالت.

**بلنځری** (blanǰáray) نر. م. د شري يا پټو د پيځکو تاو کړي مزي (سروکی، شملې).

**بلنځه** (blánǰa) ښځ. م. ۱) لمنځه، د نښتر د کورنۍ يوه ونه ده؛ ۲) ملابند، کمربند؛ ۳) پرتوګاښ، بګه، ګنډه؛ ٤) واده ته بلنه؛ ٥) د واده ورډي؛ ٦) اوږده وينبته.

**بلندره** (balándra) ښځ. م. ۱) اشر، په شريکه کومه چاره ترسره کول؛ ۲) مېلمستيا، بلنه، دعوت.

**بلنديکه** (balandiká) ښځ. م. اورلګوونی، ژر بلېدونکی، ژر اور اخيستونکی.

**بلنډو** (balanḍū́) نر. م. ببلنډو، د پنځلسمې شپه، د برات شپه، پالو شپه، د ببلنډو شپه.

**بلنډه** (blanḍá) ښځ. م. شونتی، ليت، چراغ چوب، يزګه، بولنډه، يږه.

**بلنګ** (bláng) ص. نر. م. ۱) تازه، ښايسته، ښکلی؛ ۲) نر. م. غوښتنه، بلنه، يادونه، دعوت کونه؛ ۳) ص. نر. م. څرګند، ښکاره، جوت، په ډاګه.

**بلنګېدل** (blangedál) مص. ل. څرګندېدل، ښکاره کېدل، جوتېدل، په ډاګه کېدل.

**بلنليک** (balánlik) نر. م. د بللو رقعه، دعوتنامه.

**بلننبه** (balannáṣa) ښځ. م. ندائيه نښه.

**بلنه** (baláni) ښځ. م (ج. بلنې) مېلمه کونه، دعوت کونه، غوښتنه، يادونه.

**بلو**[1] (baló) نر. م. شخصي نوم دی.

**بلو**[2] (biláw) نر. م. سونی، نوزی، ببلو، برجي، چرکانی، د چړې د تېره کولو تيږه.

**بلوا** (balwā́) ښځ. م (ج. بلواوې) اله ګوله، اړودوړ، شورش، ، اغتشاش، بغاوت.

**بلواکي** (balwā́ki) پردی واکمني، بهرنۍ واکمني.

**بلوټ** (bláwt) ق. ۱) جفت، جوړه، جوخت، غبرګ؛ ۲) پرله پسې، متواتر.

**بلوټ** (bilóṭ) نر. م. د توپک ګاټ، د توپک لټ، قلفک، د دروازې لټ.

**بلوټه** (blóṭa) ښځ. م. د بوټ، چراغ ځای، د څراغ چوکی، څراغ پايه، د ډيوې کېښودلو ځای.

**بلودل** (blodә́l) مص. مت ۱) مړل، سولول، مښل؛ ۲) لاس وروړل؛ ۳) په غوسه کول، قهرول.

**بلوده** (blodә́) ښځ. م. ۱) تیندک، ټکر؛ ۲) د غره، بدرې؛ ۳) دښمني، مخالفت.

**بلور** (bılawár) نر. م. ښیښه، ائینه، یو ډول شفاف مصنوعي جسم چې ښیښې ته ډېر ورته دی.

**بلوره** (blorá) ښځ. م. مړنه، مښنه، مالش کونه.

**بلوري** (bıláwri) ص. نب. له بلور څخه جوړ شوی، بلور ته منسوب.

**بلوری** (bıláwray) ص. نر. م. هغه مرد کی یا تیک چې له ښیښې نه جوړ شوی وي.

**بلوړی** (bılóṛay) نر. م. و گ. بلنگوزی.

**بلوس** (bláws) نر. م. د ربړ او تکلیف ورکولو په نیت نېږدې کېدنه.

**بلوساک** (blosák) نر. م. بلوسه، بلوسنه، تېری.

**بلوسگر** (blosgә́r) فا. نر. م. یرغلگر، متجاوز، تېرو.

**بلوسل** (blawsә́l) مص. ل. څورول، تکلیف رسول، ربړول، چېړل.

**بلوسېدنه** (blawsedә́na) مص. ل. ۱) څورېدنه، ربړېدنه، چیړېدنه؛ ۲) له یو چا کرکه کېدل؛ ۳) مص. مت. تهدېدونه.

**بلوغ** (bulúğ) نر. م. ځوانېدنه، ځوانی ته رسېدنه.

**بلوک** (blúk) نر. م. د عسکري تشکیلاتو اړونده اصطلاح ده.

**بلوکمشر** (blūkmašә́r) نر. م. هغه افسر چې د یوه بلوک عسکرو مشري یې پر غاړه وي.

**بلوگی** (bilógay) نر. م. پیش کندی، پیشن گوری، پیش کوتی، پیشنگوری.

**بلول** (balawә́l) مص. مت. لگول، اور لگول، اور ورته کول، اور بلول، روښانه کول.

**بلومه** (blū́ma) ښځ. م. زکام، والگی، بادووني، له سړو وهلو څخه پیدا شوې ناروغتیا.

**بلونډی** (bılūnḍáy) ښځ. م. بوخڅی، بوخڅکی، وړه کڅوړه، بوخڅه، بوخچه، بخچه.

**بلونکی** (balū́nkay) فا. نر. م. کوربه، بلونی، دعوت ورکوونکی، راغوښتونکی.

**بلونگړی** (balūnkgṛáy) نر. م. ۱) د ونې پیشوگی؛ ۲) بلوگی، د پیشو بچی؛ ۳) خانی، نولی.

**بلوه** (balwá) ښځ. م. و گ. بلوا.

**بله** (bála) ښځ. م ۱) د بل ښځینه بڼه؛ ۲) نېزه، برچه.

**بله پله** (balapála) ق. ۱) بل طرف، بله خوا، بل لوری؛ ۲) بل ځل.

**بلها** (balhā́) ص. نر. م. ۱) زیات، پرېمانه، ډېر، کافي؛ ۲) بلا.

**بلهار** (balhā́r) نر. م. جار، ځار، قربان، فدا، نثار.

**بلهارځی** (balhā́rǰay) نر. م. سربښندنځای، د سربښندنې ډگر، قربانگاه.

**بلهارول** (balhārawә́l) مص. مت. قربانول، ځارول، لوگی کول، جارول.

**بلهاري** (balhā́ri) ښځ. م. سربښندنه، قرباني.

**بلهېر** (balhéṛ) ق. بل وار، بل ځل، بیا، دویم ځل.

**بلې** (balé) اد. ۱) هو، هوکې؛ ۲) آ. ښځ. م. پشې، د پیشو د شرلو اواز.

**بلی** (baláy) ښځ. م. ۱) پیشو، پیشی؛ ۲) د چت چجه؛ ۲) بام، د بام غاړه، پیک.

**بلی** (bálay) نر. م. شاتیر، ویشه، بش.

**بلې بلې** (balebále) اد. ۱) آآ. هو هو، همداسې ده، هوکې، سمه ده؛ ۲) ص. ښځ. ډېرې روښانه لمبې، غوړنجې، ځلېدونکې لمبې.

**بلې پش** (balipáš) نر. م. ۱) د ونې پیشوگی، ۲) خانی؛ ۳) بلونگړی، خرپانډی.

**بلېچون** (baleč̇ũn) نر.م. مچنوغزه، مچنوغه، مچوغنه، مچوغونده، مچلوغزه، مچوغنده.

**بلېدل** (baledál) مص.ل. اورلګېدنه، روښانه کېدل، ځلېدنه، بر کېدل.

**بلېډر** (bleḍár) نر.م. د توپ تر څرمینه پوښ لاندې ربړي پوکنی چې له باده ډکېږي.

**بلېږدل** (baleẓdál) مص.مت. ۱) نغښتل، تاوېدل، پېچل، بلېښل. ماشوم په روني کې تړل؛ ۲) مشغولېدل، مشغولول.

**بلېږدول** (bleẓdawə́l) مص.مت. ۱) تاوول، چاپېره کول، ماشوم په وروني کې نغښتل؛ ۲) الګیا کول، مشغولول.

**بلېسول** (blesawə́l) مص.مت. مسحه کول، لګول، تماس کول، مښل، لاس وروړل.

**بلېسېدل** (blesedə́l) مص.ل. مسحه کېدل، مښل کېدل.

**بلېښلی** (blesə́lay) مف. نر.م. و.ګ. بلېږدلی.

**بلېګده** (blegdá) ښځ.م. (ج. بلېګدې) خوږ، رېړ، کړاو، تکلیف، عذاب.

**بلې مانس** (blemānás) ص. نر.م. شریف، د ښه خوی خاوند، خوش اخلاق.

**بلېنده** (blendá) ښځ.م. د کرباسو پنډوس، د مالوچو پاغونده.

**بلېنډه** (blenḍá) ښځ.م. ورانګه، شغله، رڼا، لمبه.

**بلېنده وال** (blendawā́l) نر.م. پېلوڅي واله، شونتي واله، مشعلدار.

**بم**[1] (bum) نر.م. ۱) و.ګ. بوم؛ ۲) د یوشي د الوتو اواز؛ ۳) د ګادي بانګس، د بانس اوږد لرګی.

**بم**[2] (bám) نر.م. ۱) بمب. چاودېدونکي وسله؛ ۲) درباب، سیرندې، ستار، او باجې غټ او لوړ اواز، د زیر ضد؛ ۲) د حیرانتیا اواز.

**بماچوونکی** (bamačawũnkay) فا.نر.م. بم غورځوونکی، هغه جنګي وسیله چې بم اچوي.

**بمبار** (bambā́r) نر.م. بمبارد، د بمونو غورځونه، بمباري کونه.

**بمبارد** (bambā́rd) مص.مت. و.ګ. بمبار.

**بمبټه** (bambáṭa) ښځ.م. خسته، خستکه، مېندکه، د مندتې زړی، د زردالو، الوچې او...زړی.

**بمبټی** (bambáṭay) ښځ.م. بامبوټی، بامبوټی.

**بمبر** (bambár) نر.م (ج. بمبران) غومبسه، غومبس، نرغومبس.

**بمبره** (bambára) ښځ.م. (ج. بمبرې) ډمبره، تنډه، غالبوزه، غومبسه، ډمولره، بمبوره.

**بمبس** (bambás) ص. نر.م. سست بار، سست تړل شوی بار.

**بمبسه** (ambása) ښځ.م. ببربوټی، ځانګور بوټی چې ګڼ اوږ ګور زرغونېږي.

**بمبل** (bambál) نر.م. ج. ۱) بمبلک، بمبلی، د جوارو د ټانټې هغه پاسنی برخه چې د جوارو ګل ګڼل کېږي.

**بمبلاکه** (bamblā́ka) ښځ.م. (ج. بمبلاکې) شمله، د پټکي شمله، د لونګۍ شمله.

**بمبل کوټ** (bambalkóṭ) نر.م. ۱) د ختو برج؛ ۲) د ختو کلاګی؛ ۳) د شګو توپی.

**بمبلول** (bambalawə́l) مص.مت. ۱) ځیرول، بیرول؛ ۲) نمغول؛ ۳) توره یا تویک پورته کول.

**بمبو** (bambū́) ص. نر.م. ۱) ډبډبه، تند، ګیډه، پرسېدلی، غټ خېټی؛ ۲) نر.م. د اوسپنې هغه تېره سپېته چې له بوریو نه غله راباسي.

**بمبوټک** (bambū́ṭak) نر.م. یو غرنی بوټی دی.

**بمبوړی** (bambū́ṛay) نر.م. (ج. بمبوړي) توکه، ټکاله، ملنډه، مسخره، ناخواله، دوره.

**بمبوق** (bambū́q) ص. نر.م. سپک، بې عزته، بې آبه، بې پته، بې آبرو، بې حیا.

**بمبوله** (bambóla) ښځ.م. ترټه، بمبونی، پرېړی، د غلو دساتلو لپاره له لوخو جوړ شوی لوښی.

**بمبه** (bambá) ښځ.م. ۱) هغه آله چې مایعات پرې راباسي، هغه آله چې د بایسکل ټېرو ته هوا پرې ورکوي؛ ۲) نل، پیپ؛ ۳) پمپ.

**بملۍ** (bamláy) ښځ.م. تبله، دوکړی، دوبلۍ، دوړې، د موسیقۍ یوه آله.

**بمول** (bamawál) مص. مت. ۱) پارول، لمسول، تحریکول، بڅول؛ ۲) غومبسې او بمبرې بڅول.

**بمه**(۱) (bumá) ښځ.م. نېزه، سانګه، بله.

**بمه**(۲) (báma) ښځ.م. غومبسه، بمبره، سره مچۍ، ټنډه غلبوزه، غلبوزکه.

**بن** (bán) ښځ.م. هغه ښځه د بلې بن ده چې خاوند یې یو وي، د یوه سړي دوه ښځې یوه د بلې بن وي.

**بنا** (bınā́) ښځ.م. ۱) تهداب، بنیاد، بنسټ، جړ؛ ۲) ودانۍ، عمارت؛ ۳) پیل، شروع.

**بنات** (banā́t) نر.م. دوه بره وړین ټوکر، ماغوتي رخت، ماهوت، ماغوت.

**بناتي** (banā́ti) ص. نب. ماغوتي ټوکر.

**بنارس** (banārás) نر.م. یو ډول وریښمین ټوکر چې زر تار په کې لګېدلی وي، بنارسی.

**بناوټ** (banāwáṭ) نر.م. ۱) جوړښت؛ ۲) ټګي، جعل سازي، فریب، چلبازي، چل.

**بناوټي** (banāwáṭi) ص.نب. مصنوعي، چل ولي، د چا د ګیرولو او نیولو ترتیب.

**بن باس** (banbā́s) نر.م. ۱) په ځنګل کې استوګنه کول؛ ۲) تبعیدونه، له ملک نه شړنه.

**بنتوب** (bantób) نر.م. بنتیا، بنتون، بنوالی.

**بنټک** (binṭák) نر.م. کړیش، پشکوری، کته پیش.

**بنج** (bánj) نر.م. (ج. بنجونه) څېړۍ، بلوط.

**بنجاری** (banjā́ray) نر.م. (ج. بنجاري) بنجاره، سوداګر، سودا خرڅوونکی، منیاری.

**بنجخ** (banjáx) نر.م. بنجخه، بنجغې، بنجخې، نری لښتې، انجرې بنجرې څانګې.

**بنجر** (banjár) ص. نر.م. ج. شاړه، ویرانه، خرابه، هغه ځمکه چې د کرلپاره چمتو نه وي.

**بنجی** (banjáy) نر.م. ګنجی وړی، پوچه سوټکه، دجوارو هغه وړی چې لږې دانې ولري.

**بنجۍ** (banjáy) ښځ.م. یو ډول ونه ده.

**بنچک** (bančák) نر.م (ج. بنچکونه) بنیاد، جرړه، ریښه، بېخ، د یوه شي اصل.

**بنچر** (bančár) ص. نر.م. ج. ګډوډ، جاخه، جړ، انجړ بنجړ، نامنظم، یو په بل کې ننوتی.

**بنچه** (bančá) ښځ.م (ج. بنچې) ۱) ګېډۍ، دسته، کوده؛ ۲) ډکه، منډلۍ، شنډۍ.

**بند** (band) نر.م. ۱) د اوبو د ایسارولو لپاره له تیږو او خاورو څخه جوړه شوې پوله؛ ۲) مفصل، د لاس، پښې او ... دڅو برخو د یو ځای کېدو ځای ۳) دشعر، نظم یو بند؛ ۵) ص. نر.م. قید، حبس؛ ۶) چوپ، غلی؛ ۷) ممنوع؛ ۸) ایسار، معطل.

**بنداژ** (bandā́ž) نر.م. هغه ټوټه چې په ټپ یا زخم تړل کېږي.

**بند بنا** (bandbınā́) ښځ.م. ۱) بند و بست، تجویز؛ ۲) مشوره، سلا، خوښه، شورا.

**بند بند** (bandbánd) ص. نر.م. ۱) اندام اندام، ټوټې ټوټې، بند په بند؛ ۲) ایسار، پښه نیولی.

**بند پر بند** (bandparbánd) ص.نر.م. اندام اندام، بند بند، ټوکړې ټوکړې، ټوټې ټوټې.

**بندر** (bandár) نر.م. ۱) بندرګاه، د بېړیو تمځی؛ ۲) پوله، سرحد، ټک؛ ۳) مرکزي موقعیت.

**بندروال** (bandarwā́l) نر. م. د بندر مشر، د بندر آمر.

**بندروالي** (bandarwā́li) ښځ. م. بندر مشري، بندري مديريت.

**بندړ** (bandā́ṛ) نر. م. ۱) قول، ژمنه، وعده، عهد؛ ۲) ناغه، شول (د غرنيو مېوو حاصلات).

**بندښت** (bandə́ṣ̌t) نر. م ۱) بندېز، بند، قيد، بندش ۲) بندوړ، بندار.

**بندکی** (bandákay) نر. م ۱) وربل، ماتوی، پېچکي نيونه، د پېکی اوېدل شوي ويښتان؛ ۲) يو ډول وابنه دي.

**بندکه** (bandáka) ښځ. م. (ج. بندکي) کېږي، چوته، د څرمنې څپلی.

**بندګړ** (bandgáṛ) ترلی ګړ (مورفيم)

**بندګي** (bandági) ښځ. م. ج. ۱) حکم منمنه، تابع داري، متابعت؛ ۲) غلامي، مرييتوب.

**بندڼ** (banḍáṇ) نر. م. بند و بست، تړون، تجويز، مشوره، بندوړ، بنډار.

**بندوالی** (banḍwā́lay) نر. م. ۱) بنديتوب، بند، بندښت، بندېز، بندېدنه؛ ۲) مخالفت.

**بندوبست** (bandūbást) نر. م. ۱) بند و بس، ترتيبات، انتظام، چاره؛ ۲) د ځمکې د ماليې د ټاکلو اندازه؛ ۳) تجويز.

**بندول** (bandawā́l) مص. مت. ۱) ايسارول، تم کول، ګرځول؛ ۲) بندي کول؛ ۳) منع کول.

**بنده** (bandá) نر. م. (ج. بندګان) ۱) د خدای په لاره روان، د خدای امر منونکی؛ ۲) مريی، غلام؛ ۳) بنيادم، انسان.

**بنده کوڅه** (bandakū́ca) ښځ. م. بېخبندی، بن بست، خنډ.

**بندي** (bandí) ص. نر. م. (ج. بنديان) ترلی، ګير، بنديوان، محبوس، بندي شوی.

**بندی** (bandáy) ښځ. م. ج. ۱) وروړی، غاړکی؛ ۲) داوبو کوچنی بند؛ ۳) د هر کوچنی پټي چې د نورو پټيو په منځ کې وي.

**بندېدل** (bandedál) مص. ل. ۱) بندي کېدل، قيدېدل؛ ۲) ايسارېدل، تم کېدل؛ ۳) تحبه کېدل قبض کېدل، قبضېدل.

**بنديخانه** (bandixā́na) ښځ. م. محبس، زندان.

**بندېز** (bandéz) نر. م. (ج. بندېزونه) ممانعت، قيد، بندش، بندښت، خنډ.

**بنديوان** (bandiwā́n) ص. نر. م. بندي، قيدي، بند، محبوس، ګېر، ايسار.

**بنډ** (banḍ) نر. م ۱) تاوان، ناغه؛ ۲) بان، هغه اوره چې پياتې ته يې د پخېدو په وخت کې وراچوي.

**بنډار** (banḍā́r) نر. م. ۱) ناسته، بنديار، سوبت، بزم، مجلس؛ ۲) ګاډيال، وران او شاړ کوهی.

**بنډارځی** (banḍā́rjay) نر. م. بنډارخونه، نايټ کلب.

**بنډاره** (banḍā́ra) ښځ. م. ۱) وګ. بنډار؛ ۲) ديو چا د وژني لپاره مېلمستيا او غونډه.

**بنډاري** (banḍā́ri) ص. نر. م. ج مجلسي، ګپاوه، ګپاوو، همرکاوو، ګپي.

**بنډس** (banḍás) نر. م. د دانهس ژی، دندانی هغه تار چې د پسه له کولمې څخه جوړ شوی وي.

**بنډل** (banḍál) نر. م ۱) درجن، حصه، برخه، دسته، ګېډۍ؛ ۲) هغه رسۍ چې د اوښ د تمبو بار تينګوي.

**بنډه** (banḍá) ښځ. م. (ج. بنډې) ۱) حصه، برخه، ونډه؛ ۲) مکر، چل، فريب، تګي، دوکه.

**بنډی** (banḍáy) نر. م. ۱) ورخ، د اوبو خوله؛ ۲) هغه لرګی چې د سپارې کونده ورنه جوړېږي ۳) د شاه د خولې موازي لرګي؛ ۴) په منځ کې پرې شوی لرګي؛ ۵) اندی، بار، مېږی، کالبوت.

بنډيل (bandíl) نر.م. (ج. بنډيلونه) لويه لونګۍ، غټه پګړۍ، منديل، منډويل.
بنزی (banzáy) نـر.م. (ج. بنزي) ناسـکه زوی، د بنې زوی، د بنو زامن بنزي ګڼل کېږي.
بنسټ (bansáṭ) نـر.م. آر، بنياد، اساس، تاداو، بنچک، بېخ، اصل، ريښه
بنسټپال (bansaṭpā́l) نـر.م. بنسټ پالونکی، بنيادګرا
بنسټپالنه (bansaṭpālána) ښځ.م. بنيادګرايي.
بنسټيز (bansáṭiz) نـر.م. ص. بېخـن، بېخـي، بنيادي، اساسي.
بنسور (bansū́r) نر.م. بنسير، بينسير، کونده، د ييوې کونده.
بنفشي (binā́fši) ص.نب. بنفش، چنياېي، چتکايي، د توتکۍ ګل په څېر رنګ.
بنکی (banakáy) ښځ.م.ج. ۱) کوچنۍ بنۍ، وړه بنۍ، هغه آله چې پښان يې د سکرو د تازه کولو او لګولو لپاره استعمالوي؛ ۲) ګوډی.
بنکی (bánkay) نـر.م. هغه دسمال چې له مېوې څـخه ډک وي او خـوابـښـې يې خپـل زوم تـه د اول وار ورتـګ (زوم ګيـــرۍ) پـه وخــت کې ورکوي.
بنګ (báng) نر.م. (ج. بنګهار) ۱) بنګا، بنګی، بڼ (زنبدا) د مچـانو، غومبسو او مچيـو اواز؛ ۲) پس پسی، پسېده؛ ۳) د چرسو بوټی.
بنګاټی (bangātáy) ښځ.م.ج. يوه کـوچنۍ مرغۍ ده؛ ۲) د کوچنيانو يوه لوبه.
بنګړه (bangṛá) ښځ.م. ۱) نخا، دريس، د ختـکو نخا؛ ۲) وړانګه، شغله، پلوشه.
بنګړی (bangṛáy) نر.م. هغه کـړی چې سينګار لپاره اچول کېږي.
بنګړی بنګړی (bangṛaybangṛáy) ص. نـر.م. ۱) وران، ړنګ شوی، خـراب شوی ۲) نر.م. د کوچنيانو يو ډول لوبه ده.
بنګړيچه (bangṛičá) ښځ. م. بنګي خانه، ساقي خانه، د بنګيانو ځای، د بنګيانو کوټه.
بنګړيمار (bangṛimā́r) نـر.م. يـوه لـوبه ده چې بنګړي مات يې هم يولي.
بنګړيوال (bangṛiwā́l) نر.م. بنګړي خرڅوونکی.
بنګ سوټی (bangsoṭáy) نر.م. د بنګو د ميده کولو لرګی.
بنګله (banglá) ښځ. م. ۱) ماڼۍ، څو پـوړيز پوخ کور؛ ۲) کور.
بنګڼ (bangáṇ) نـر.م. ج. منګڼ، غـوڼی، ګوڼی، بنګي، هغه څوک چې په پټه کې خبرې کوي.
بنګوری (bangū́ray) ص. نر.م. و ګ. بګېل.
بنګوړک (bangū́ṛák) نـر.م. ۱) فـال بين، فال، طالع کتونکی؛ ۲) يو ډول وړې مرغۍ دي.
بنګول (bangawā́l) مص. مت. ۱) ژړول، پـه بنګا سـر کـول؛ ۲) مچـان بنول، رباب، غجکه (سرينده) او نور ترنګول.
بنګوله (bangū́la) ص. نب. ناخبره، ناپوه.
بنګولی (bangūláy) ښځ. م. د کوچنيانو لوبه ده.
بنګه (bongá) ښځ. م. ۱) ميراث؛ ۲) رشوت، بډې، بونګه.
بنګي (bangí) ص. نر.م. ۱) د بنګو عملي، چرسي؛ ۲) نر.م. چوړی، جاروکښ.
بنګی (bangáy) نر.م. ۱) هارپ، د موسيقۍ يوه آله ده؛ ۲) بنګ کاروونکی.
بنګېدل (bangedā́l) مص. ل. ۱) ژړېدل؛ ۲) مچان شړل کېدل، غـومبسې کـتېدل، رباب، غجکه او نورو ترنګېدل.

**بنی** (banáy) ښځ. م. و گ. بنکی.

**بنیاد** (bonyā́d) نر.م. (ج. بنیادونه) بنیه، بنخ، بنسټ، تاداو، آر، اساس، جړ، اصل.

**بنیادم** (banyādám) نر.م. (ج. بنیادمان) انسان، سړی، د ادم (ع) اولاد.

**بنیادم توب** (banyādamtób) نر.م. سړیتوب، انسانیت.

**بنیادي** (bonyā́di) ص. نسب. ۱) ابتدایي، پیل، شروع؛ ۲) اساسي، بنستیز، اصلي.

**بنیان** (banyā́n) نر.م. (ج. بنیانونه) بنین، جاکټ، گنجی، جرابی.

**بنېره** (banéra) ښځ. م. سرمنډیل، سردو، پارچال، پرچال، سرماتی، د دېوال د سر پخښه.

**بڼ** (baṇ) نر.م. (ج. بڼونه) ۱) باغ، د مېوه لرونکی او بې مېوو ونو ځای؛ ۲) هغه اوره چې له اوبو سره گډ شي او بیا په پیټي کې اچول کېږي؛ ۳) سرو شویو پیازو ته چې اوره اچول شوي وي او بیا پیاتې ته اچول کېږي.

**بڼ بڼ** (baṇbáṇ) نر.م. بڼهار، بڼا، د مچانو اواز.

**بڼاو** (baṇā́w) ص. نر. م. ښکلی، گلالی، ډولي.

**بڼاوول** (baṇāwawál) مص. مت. سینگارول، ښکلی کول.

**بڼرېږ** (baṇréž) نر.م. بڼرېږون، کوربز، د بڼکو رژېدنه، د مرغانو د بڼکو توېېدو وخت.

**بڼ ساټ** (baṇsā́t) فا. نر.م. و گ. بڼوال.

**بڼ سترگی** (baṇstárgay) ص. نر.م. چغ سترگی، چوغ سترگی.

**بڼکه** (baṇáka) ښځ. م. ۱) بڼه، پر، د مرغانو پخه؛ ۲) کوچنی باغچه، باغچه گی، باغ گوتی.

**بڼکی** (baṇkáy) ښځ. م. باغچه، باغ گوتی.

**بڼگر** (baṇgár) ص. نر.م. باغوان، مالیار، بڼوال.

**بڼگري** (baṇgári) باغواني، مالیتوب، مالیاري.

**بڼ مانو** (baṇmā́ṇū) نر.م. ۱) برمانو سارانی سړی ۲) لنگـو، د بېزوگانو یو ډول؛ ۳) ص. نـر.م. مجازاً شهوتي سړی.

**بڼوال** (baṇwā́l) فا. نر.م. باغوان، بڼگر، باغبان، مالیار، باغساتونکی.

**بڼول** (baṇwál) مص. مت. ۱) مچی په شور او بڼهار راوستل؛ ۲) د زیاتې روښنایي په سبب سترگې نیم کښو غړول؛ ۳) چت پټول، چت جوړول.

**بڼه** (baṇá) ښځ. م. (ج. بڼې) ۱) څېره، بشره، رنگ، قواره؛ ۲) پخه، بڼکه، بڼکی، پر.

**بڼی** (baṇáy) نر.م. نروله، مجنون بېد، سره وله، زیړه وله، ځوړندې څانگې وله.

**بڼیا** (baṇyā́) ص. ښـځ. م. ۱) نیم کښـبـه دروازه؛ ۲) بڼیاگر، دکاندار، اوره خرڅوونکی.

**بڼیاتوب** (baṇyātób) نـر.م. ۱) ساهـو کاري، دکانداري؛ ۲) بخیلي، شومتیا، کنجوسي.

**بڼیار** (baṇyā́r) نر.م. رنگمال، رنگوونکی.

**بڼیاکول** (baṇyākawál) مص مت. ورنیم کښو کول، دروازه نیمه پورې کول.

**بڼیالی** (baṇyā́lay) ص. نر.م. (ج. بڼیالي) ډولي، ښکلی، ښایسته، پې مخی.

**بڼېدل** (baṇedál) مص. ل. ۱) د مچ غومبسې؛ ۲) کښېدل، پاړېدل؛ ۳) د ودانی چت جوړېدل.

**بڼیه** (baṇyá) ص. نسب. ۱) اوره خرڅوونکی؛ ۲) دکاندار؛ ۳) شوم، بخیل، کنجوس.

**بو**(۱) (báw) نر.م ۱) د ویرولو اواز؛ ۲) بلا، شیشکه؛ ۲) د کوچنیانو د خندولو اواز.

**بو**(۲) (bó) ښځ. م ۱) څه! لرې شه! اخواشه! ۲) کورې! چغه! توتو!؛ ۳) نر.م. د اغزي یا ځوز څوکه؛ ۴) اتشک، بادفرنگ؛ ۵) ښځ. م. ټای، هغه

نښکتایي د وله توته چې د کالر د پاسه د یوه گل په ډول تړل کېږي؛ ٦) بوی، وږم.

**بواری** (bûwâray) نر.م ۱) بوری، هغه خوسکی چې نوی د مور له پیو څخه بېل شوی وي؛ ۲) هغه پوستکی (ژغون) چې ناروغ ته د تداوی په ډول اچول کېږي.

**بواسیر** (bawâsir) نر.م. د مقعد یو مرض دی چې څو ډوله لري: خوني، بادي یا بلغمي بواسیر.

**بوالهوس** (bolhawás) ص. نر.م. ۱) حریص، طمع کوونکی، لالچي؛ ۲) شهوتي، عیاش.

**بوب** (bûb) ص.نر.م. سوچه، خالص، صاف، صفا، بې غشه، نږه.

**بوبتوب** (bûbtób) نر.م. سوچه توب، خالص والی، صافوالی، بې غشوالی، نږه والی.

**بوبلا** (bûbalá) ښځ.م. بلا، لویه بلا، لوی آفت.

**بوبند** (bobánd) نر.م. بار وړونکی اوښ.

**بوبو** (bawbáw) نر.م. دېروې اواز، د ککوې اواز.

**بوبوتتی** (bûbûtátay) نر.م. ملاچرگک، گوډ چرگ، بیبنکی، ملاگوډ، کوکوپښی.

**بوبول** (bûbawál) مص. مت. سوچه کول، خالصه کول، صفا کول، بې غشه کول، نږه کول.

**بوبه** (bobá) ښځ.م. (ج. بوبې) ۱) پتنه پانگه؛ ۲) په اسانی سره لاس ته راغلې شتمني یا نفع.

**بوبه پښتو** (bûbapaṣtó) ښځ.م. خالصه پښتو، سوچه پښتو، صفا پښتو، نږه پښتو.

**بوبی** (bûbáy) ښځ.م. ببی، مشره خور، مشره ښځه، د مشرو ښځو لپاره د احترام لقب.

**بوبېدل** (bûbedál) مص. ل. سوچه کېدل، خالص کېدل، صفا کېدل، بې غشه کېدل.

**بوت** (bût) ص.نر.م. (ج. بوتي) ۱) ځوان، زلمیتوب ته نږدې، بالغ؛ ۲) بت؛ ۳) پېره، شکل، قد.

**بوتاړ** (bûtâṛ) نر.م. ۱) اوربوز، وربوز، سونته، د څناور مخ؛ ۲) وران مخ.

**بوتکی**[1] (bûtkáy) ښځ.م. د سرو زرو سکه.

**بوتکی**[2] (botakáy) نر.م. (ج. بوتکي) بوکری، زلمیتوب ته نږدې، ځوانۍ ته نږدې.

**بوتکی** (botákay) نر.م. ۱) تیټ دېوال، ورکوټی دېوال، د پناهی دېوال؛ ۲) غتهکی (ماشوم).

**بوتل** (botál) نر.م. ۱) ښیښه یې لوښی؛ ۲) ص. نر.م. کم عقل، بې عقل، بې مغز.

**بوتلل** (botlál) مص. مت. بېول، بیول، بوول.

**بوتلی** (botálay) مف. نر.م. (ج. بوتلي) بیولی، بوولی، بوتللی.

**بوت ماتی** (bûtmâtay) ص.نر.م. بت ماتوونکی، بت شکن.

**بوتن** (bûtán) نر.ج. وړاندوینه، مخکې وینه، غیب وینه؛ ۲) بهتان.

**بوته**[1] (botá) ښځ.م. (ج. بوتې) ۱) کوټالی، د زر ویلې کولو خاورینه پیاله؛ ۲) یرغمل، برمته.

**بوته**[2] (bûtá) ښځ.م. جلی، پېغله، نجلی.

**بوتی** (bótay) نر.م. جونگ، جونگی، د اوښ بچی.

**بوتی** (botáy) ښځ.م. چوتی، چوتکه، څېرې، د ښیکانو د ککرې په منځ د سراوږده ویښتان.

**بوټ**[1] (bûṭ) ص. نر.م. ۱) مرور، ترینگلی، خفه؛ ۲) نر.م. د پښو کولو یو ډول پایزار.

**بوټ**[2] (bóṭ) نر.م. دجواری هغه پیسې چې د پلاش د لوبې تر پیلېدو د مخه په میدان کې اچولې کېږي او گټونکی یې اخلي.

**بوټبه** (bûṭbá) نر.م. (ج. بوټبانه) لرگبه، بوټوه، خسبه.

**بوټپاک** (bûṭpák) ص.نر.م. ۱) پښه پاک، گاوله پاک؛ ۲) غوړه مال، چاپلوس.

**بوټ پالښ** (būṭpālə́x̌) نر.م. بوټ رنګونه.

**بوټپوهنه** (būṭpohána) نر.م. د بوټيو علم، ګيا پوهنه، علم النبات.

**بوټ دوز** (būṭdóz) فا.نر.م. موچي، چمیار.

**بوټ سوري** (būṭsū́ri) نر.ج. ۱) بوسوري، خڅوکی، دډوډیو میده ګي؛ ۲) سبوس؛ ۳) هغه ډوډۍ چې په تناره کې ولوېږي، غونډاري شي.

**بوټک** (būṭák) نر.م. اومه خوله، ژنکی، بوټکی، مراهق، سره خوله، سپینه خوله، زلموټی.

**بوټکه**[1] (boṭká) ښځ.م. یو ډول سابه.

**بوټکه**[2] (būṭáka) ښځ.م. (ج. بوټکې) جلۍ، نجلۍ، پېغلکۍ، پېغلوکې.

**بوټول** (būṭawə́l) مص.مت. ۱) په غوسه کول، خوابدی کول؛ ۲) سر په ځمکه کول، سوټې کونې کول؛ ۳) راپارول.

**بوټ وربوزی** (būṭwurbū́zay) ص.نر.م. مرور، خفه، خوابدی.

**بوټی**[1] (bū́ṭay) نر.م. (ج. بوټي) ۱) هر هغه نبات چې د ځمکې نه راوټوکېږي؛ ۲) هغه خوږ شی چې ماشوم ته له زېږېدو وروسته ورکوله کېږي؛ ۳) اصل، بنیاد، ستنه، ريښه.

**بوټی**[2] (bóṭay) ص.نر.م. خس وخاشاک، غونجی، میندی، هغه پسه یا میږه چې غوږونه یې کوچني وي.

**بوټۍ** (boṭáy) ښځ.م.ج. ۱) بیټی، سره تیکه، سره غوښه؛ ۲) هغه زخم چې پوستکی پرې نه وي او وینې ترې بهېږي؛ ۳) ص.نب. بېکاره.

**بوټۍ بوټۍ** (boṭayboṭáy) ص.ښځ.م. ټوټه ټوټه، تیکه تیکه، پارچې پارچې.

**بوټیانه** (būṭyā́na) ښځ.م. بوټيې، نيالګره، نهالستان.

**بوټېدل** (būṭedə́l) مص.ل ۱) خفه کېدل، مرورېدل؛ ۲) سر په ځمکه کېدل؛ ۳) راپارېدل، جنجالونه را پوټېدل.

**بوټیکه** (būṭiká) ښځ.م. د ځمزورۍ غونډې بوټی چې پاڼې به یې ښځو د سپېرو ورکولو لپاره په سر کې اچولې.

**بوج** (būj) نر.م. ۱) پېټی، بار؛ ۲) حجم، ظرفیت.

**بوجرکی** (bojárkay) نر.م.د شمزی (د ملاد تیر) یو هډوکی.

**بوجګی** (bojagáy) ښځ.م. ورکوټې کڅوړه، وړه بوجۍ.

**بوجه** (bojá) ښځ.م. ۱) جوال، بوجۍ، لویه خلته؛ ۲) د کوزې او بوتل د خولې بندولو سرپوښ؛ ۳) پېټی، بار؛ ٤) دروند والی.

**بوجۍ** (bojáy) ښځ.م. بوری، ګونۍ، ګونۍ.

**بوچ** (būč) ص.نر.م. غونجی، بوچی، موندی، غوږ او پوزه پرې شوی (انسان یا حیوان).

**بوچ پزی** (būčpázay) ص.نر.م. پوزه پرې کړی، پزه پرېکړ شوی.

**بوچخړی** (būčxāṛay) ص.نر.م. هغه ټوټه یا کالی چې په باغ کې د ځناورو د وېرولو لپاره ځړول کېږي.

**بوچړ** (būčāṛ) نر.م. پاته شونی، پوټسکی، بوچړکه، پسمانده، لاس وهونی، سروېغي.

**بوچړه** (būčáṛa) ښځ.م. (ج. بوچړې) خاشاک، بوټی، خځلې، د سوځولو وچه ګیاه.

**بوچړی** (būčáṛay) نر.م. (ج. بوچړي) ۱) سربند، د سر پټ؛ ۲) دماربچی؛ ۲) دښځې د تناسلي آلې هغه برخه چې په عربو کې به یې سنتوله.

**بوچک** (būčák) نر.م. ۱) تلخک، د ختکې هغه ډول چې لو مړی تریخ وي او بیا خوږ شي؛

۲) ساده کمیس.

**بوچوڼی** (būčū́ṇay) نر.م. ۱) چونګی، هغه اوړه چې د ژرنده ګرۍ شاګرد یې د غلې له خاونده اخلي؛ ۲) د ژرنده ګرۍ شاګرد.

**بوچی** (bū́čay) ص.نر.م. ۱) بوچ، بوڅ، له (لنډي) سره ترکیبي لغت جوړوي ـ لنډی بوچی؛ ۲) بې باک، بې شرمه، هغه انسان چې پوزه یې یا لنډه وي او یا لنډه شوې وي.

**بوچی بوچی** (būčaybū́čay) ص. نر.م. توتې توتې، کنډ کپر، کونډې کپر، لنډی لنډی.

**بوڅ** (bū́c) ص. نر.م. ۱) خفه، مرور؛ ۲) د حیوان غوږونه د ډار له امله نېغ نیول.

**بوڅکی** (būcákay) ښځ.م. ۱) مزدوري، اجرت؛ ۲) د پنبو په سر ناسته؛ ۳) پستکی، پخه کی، د غوږ لاندنی نرمه برخه.

**بوڅوالی** (būcwā́lay) نر.م ۱) خفګان، مرور توب، خوابدي توب، غوسه توب؛ ۲) غوږ نېغونه، نېغ درېدنه.

**بوڅول** (būcawál) مص. مت. ۱) نېغول؛ ۲) غوسه کول، خفه کول؛ ۳) نېغ نېغ کول.

**بوځل** (bužál) نر.م. ببخل، ګرونج، د تیږو دېوال.

**بوخ** (bū́x) ص. نر.م. غمجن، غمګین، خواشینی، له ډېره غمه چوپ ناست.

**بوخت** (bóxt) ص. نر.م. ج. لګیا، اخته، مصروف.

**بوخته**(۱) (boxtá) ښځ.م. ۱) جبه، زیمناکه ځمکه؛ ۲) ګرانه کشاله، لانجه؛ ۳) د بوخت مونثه بڼه.

**بوخته**(۲) (boxáta) ښځ.م. د غوښې اخته کونه (د کباب جوړولو لپاره)

**بوخڅی** (boxcáy) ښځ.م. بوخڅکی، بوخچه.

**بود** (bū́d) نر.م. ۱) حاصل، ګټه؛ ۲) بوساړه چې اخېږ ورکړی شوی وي؛ ۳) خیال؛ ۴) پوه سړی.

**بودتون** (būdtū́n) نر.م. بتخانه، د بتانو ځای.

**بودري** (bū́dri) ښځ.م. ۱) تیند؛ تکر خوړنه؛ ۲) بده پېښه، تاوان، ضرر، نقصان.

**بودلنه** (būdlána) ښځ.م. بې عقلي، ناپوهي.

**بودله** (būdlá) ص. نب. ناپوه، ساده، بې عقل.

**بودو** (bodó) ص. نر.م. ناپوه، بې عقل، کم عقل.

**بودول** (būdawál) مص. مت. لاس ته راوستل، حاصلول، ترګوتو کول، ترلاسه کول.

**بوده**(۱) (būdá) ښځ.م. ۱) یره، وږه، هغه تارونه چې د تنستې په پسوړ کې لګول کېږي؛ ۲) ص. نب. کمزوری، ضعیف؛ ۳) چینجن لرګی؛ ۴) ګټه، نفع، حاصل، فایده.

**بوده**(۲) (bodá) نر.م. څاروي، د نګره غوا یا غویی.

**بوده رو** (bodaráw) نر.م. د بارګیرو لاره، د کاروانو لاره، د قافلې لاره.

**بودی** (bodáy) ښځ.م. ۱) د سر کاسه، کپری، ککری؛ ۲) چوټکه، بوتی، څونکه، څری.

**بودېدل** (būdedál) مص. ل. حاصلېدل، ترلاسه کېدل.

**بوډا** (bū́ḍā) ص. نر.م. (ج. بوډاګان) زوړ، د ډېر عمر خاوند، سپین ږیری، عمر خوړلی.

**بوډابوق** (bū́ḍābū́q) نر.م. کوپی، کړوپ، هغه څوک چې د ډېرې سپین ږیرتیا له امله ملاکړوپه شوې وي.

**بوډا توب** (bū́ḍātób) نر.م. سپین ږیرتوب، سپین ږیروالی، زوړ والی، بوډاوالی.

**بوډاګی** (būḍā́gay) نر.م. سپین ږیرکی، د ډېر عمر خاوند چې قد یې وړوکی وي.

**بوډچقه** (būḍčáqa) ښځ.م. (ج. بوډچقې) کړوپه، کوپه، هغه ډېره زړه ښځه چې ملا یې کړوپه وي.

**بوډخه** (būḍáxa) ښځ.م. زړه ښځه، بوډۍ، بوډغه.

**بوډک** (būḍák) نر.م. ښکرور وز یا ښکرور پسه، هغه وز یا پسه چې ښکرونه لري.

**بوډکاکا** (būḍkākā́) نر.م. د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**بوډۍ** (būḍáy) ښځ.م. (ج. بوډیانې) ۱) زړه ښځه؛ ۲) ګوډۍ، ګوډي پران؛ ۳) په اوبو کې د ګوتې ګونجې کېدنه؛ ٤) پنبه یا لاس مېږي مېږي کېدنه: ۳) اوښه کې، نرۍ ملا او اوږدې پښې ملخ؛ ٤) د غاټول د ګل په منځ کې ولاړ شین تېغی (زخه).

**بوډي** (búḍi) ص. نب. بدطالع، بدبخت، بدمرغه.

**بوډۍ تال** (būḍaytā́l) نر.م. سره زرغونه، هغه رنګارنګ کرښه چې د باران د څاڅکو په واسطه د لمر رڼایي په اوو تیپونو وېشل کېږي.

**بوډیجر** (būḍijár) نر.م. پټ پټونی، شلامیر، پټ پټانی، د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**بوډۍ سپی** (būḍáyspay) نر.م. د بوډۍ کټ (اسمان کټ) له څلورو ستورو نه یو ستوری دی چې ګډوري یې لومړی ستوری او د بوډۍ سپی یې دوهم ستوری دی.

**بوډۍ ګډوری** (būḍayguḍū́ray) نر.م. د اسمان کټ له څلورو ستورو سره نېږدې اول ستوری.

**بوډۍ نیول** (būḍaynewā́l) مص. مت. پنبه ویده کېدل، پنبه مېږي مېږي کېدل.

**بور**[۱] (bawár) نر.م (ج. بوران) ببر، پړانګ.

**بور**[۲] (bór) نر.م. ۱) ملا، کمر؛ ۲) ص. نر.م. خړ رنګه؛ ۳) شین رنګه اس؛ ٤) نر.م. بوره توت؛ ۵) بروکی، د ګازرې پانه؛ ٦) د لرګي سی؛ ٤) د پانو کولو نه مخکې دشنډې ونې لومړنی حاصل؛ ۵) د غزدڅانګي نرۍ لښته.

**بور**[۳] (búr) ص. نر.م. زوی مړی.

**بورا**[۱] (bawrā́) نر.م. ۱) پرپرکی، غومبسی ته ورته یوه تور رنګې حشره چې په ګلانو ګرځي؛ ۲) رقیب؛ ۳) تور پوتکی سړی.

**بورا**[۲] (búrā́) نر.م. زېرزمینې، تهکاوي.

**بوراني** (borā́ni) ښځ.م. یو ډول خواړه دي چې له تورو بانجانو څخه تیارېږي.

**بوربوره** (būrbūrá) ښځ.م. ۱) بړبوکی، کاندیال، یو ډول بوټی دی؛ ۲) ص. نب. پوګه، ببر.

**بورجل** (borjál) نر.م. ۱) کور، استوګنځی؛ ۲) مورچل، مورچه، سنګر، څوکۍ.

**بورچنډه** (būrčánda) ص. ښځ.م. بوره، هغه ښځه چې تې خور ماشوم یې مړ شوی وي.

**بورخنګ** (būrxáng) نر.م. تغاره، هغه خاورین لوښی چې کالي په کې مینځل کېږي.

**بورڅاڼ** (būrcā́ṇ) نر.م. ۱) مېوه څنډونکی، مېوه اڼوونکی؛ ۲) د مېوې دڅنډلو وخت.

**بورډ** (bórd) نر.م. کمېټه، کمېسیون.

**بورډوالا** (borḍwālā́) نر.م. دکمېسیون یا کومېټې غړی.

**بورژوا** (būržwā́) ص. نر.م. ۱) پانګوال، سرمایه دار، استثمار کوونکی، شتمن.

**بورژوازي** (boržwā́zi) ص. ښځ.م. پانګواله، پانګوالي، سرمایه داري.

**بورس** (bórs) نر.م. ۱) د غاښونو پاکولو، بوټانو رنګولو او... لپاره آله؛ ۲) په بهر ملک کې د زده کړې لپاره چانس.

**بورغو** (bargū́) نر.م. نیپیل، پایپ، د تمباکو څکولو آله.

**بورقه** (borqá) ښځ.م. بوقره، چادري، بوکره.

**بورک** (bórk) نر.م. هغه ګردی چې د څرخې دوک په کې تېرېږي.

**بورکې** (bórke) ښځ. م. (ج. بورکی) هغه توبره چې اس ته په کې واښه اچوي.

**بورکی** (borkáy) ښځ. م. وړه بوجۍ، خولۍ.

**بورګی** (bórgay) نر. م. ۱) پیرکی؛ ۲) وړوکی بار؛ ۳) پړانګوټی، کوچنی پړانګ.

**بورنه** (būrná) جن. سپېره، سپېرووني، هغه اوره چې زوالي په کې یږدي؛ ۲) دستر ګو بانه.

**بورنۍ** (bor ni) ښځ. م. بوني، لومړی سودا، دستلاف.

**بوره**[1] (borá) ښځ. م. ۱) لویه بوری؛ ۲) هغه ځمکه چې اباده وي خو له کر څخه پاتې شي.

**بوره**[2] (búra) ښځ. م. ۱) شکره، چیني؛ ۲) د اُرې بور؛ ۳) ص. ښځ. م. هغه ښځه یا څاروی چې اولاد یې مړ وي.

**بوره توت** (būratū́t) نر. م. سوربخن توت.

**بوری** (bóray) نر. م. ۱) تریخی، د صفرا کڅوړه؛ ۲) خوسی، سخوندر، خوسکی؛ ۳) ص. نر. م. پوزپرې کړی؛ ۲) هغه کوزه چې خوښکوری یا منبوکه یې ماته وي؛ ۳) ژېړ بخن رنګ.

**بورۍ** (boráy) ښځ. م. ۱) بوجۍ، ګونۍ، ګونی؛ ۲) پټرۍ، هغه ګردۍ اوسپنه چې دلاړۍ د لاستي د کلکولو لپاره د مېخ سرته ورکول کېږي.

**بوریا** (būryā́) ښځ. م. ۱) بوره، له مزرو یا لوخو نه جوړه شوې بوری؛ ۲) د شګلنې ځمکې یو بوټی ۳) نر. م. پوزی، اندېری، چتایي.

**بوري بندی** (būri bánday) نر. م. هغه تاوان چې له غلط دود او دستور څخه پیدا کېږي.

**بورېدل** (būredál) مص. ل. اولاد مړ کېدل، بچی مړکېدل، د ښځې یا څاروي بچي مړ کېدل.

**بوړ** (búr) ص. نر. م. ۱) هغه شیز چې خوله یې ماته وي؛ ۲) الندبل، نګولی؛ ۲) کم عقل، احمق.

**بوړا** (būrā́) نار. م. کونګټ، کینګټ، قانغوزک.

**بوړبک** (būrbák) ص. نر. م. بې واک، بېباک.

**بوړبکی** (būrbukáy) ښځ. م. ګرد باد.

**بوړبنګ** (būrbáng) ص. نر. م. ۱) هغه غرنی بوټی چې ښخ یې ډډ وي؛ ۲) بوړبک، بې واکه، پوچ خولی؛ ۳) مست، مغرور.

**بوړندی** (būránday) نر. م. بوړېدونکی، بړاند، د مستۍ په وخت کې د اوښ غېږ.

**بوړول** (būrawál) مص. مت. ۱) په اوښ باندې تالو وهل؛ ۲) د لوبې ځنډه یا غاړه ماتول (کنډوول)؛ ۳) د سالمې ډوډۍ نه کنډک ماتول؛ ٤) معمولي ګوزاره کول.

**بوړه** (búra) ښځ. م. ۱) د غره په سر هواره ځمکه؛ ۲) لوی بند، دکانو دېوال (باره) دکانو وړه؛ ۳) قلم په یو ځل رنګ او سیاهي کښته ګونه؛ ٤) ص. نر. م. نیمګړی کار.

**بوړی** (búray) نر. م. ۱) څوک چې غوږ یا پوزه یې پرې وي؛ ۲) یوولس ډزی ټوپک؛ ۳) سرپوښ، خولپوټی، کشخولی، برغولی.

**بوړۍ** (būráy) ښځ. م. ۱) رشمه، د مالوچو تاو کړی یا غړلی تار؛ ۲) پنده، ډوبۍ، کولمه، د کوچنیانو کولمه چې د بولو په وخت کې بهر ته راوځي.

**بوري بوري** (boribóri) ص. نب ۱) سترې ستومان، بې ځانه ځوله؛ ۲) رضامند، مایل، بهل بهل.

**بوزبو** (būzbū́) نر. م. حق دوست، هغه مرغه چې د شپې یې ځان په ونه کې ځوړند کړی وي او د حق اواز باسي.

**بوزبوزکه** (būzbūzáka) ښځ. م. بوزبوزی، یو ډول سره اوږده ډمبره، مچۍ، غومبسه) ده.

**بوزبوزی** (būzbū́zay) نر. م. ۱) د غومبسې اواز؛ ۲) د ګیلې مانې خبرې.

**بوزغلی** (bozğálay) نر.م. بزغلی، د بوټو ذخیره، پنبری، کاڼ، د ونو، گلونو او سابو ذخیره چې بیا نورو ځایونه وړل کېږي.

**بوزه[۱]** (būzá) ښځ. م. ۱) خوساکېدنه؛ ۲) د خمیري تروشېدنه؛ ۳) مج. شراب؛ ٤) له غنمو، جوارو وریجو او وړدنو څخه جوړ شوي بیر.

**بوزه[۱]** (bóza) ص. نب. روژه خور، روژه خوړونکی.

**بوزی** (búzay) نر.م. ۱) بوغ، بوږی، هغه اوښ چې غوړونه یې ځک وي؛ ۲) ببوزی، پکه.

**بوزي** (búzi) ص. نب ۱) بوزینه، وزیینه، سره ځرمن؛ ۲) ډنگر (خوار) سړی یا څاروی.

**بوزۍ** (būzáy) ښځ. م. بوڅه، تام بوزی، تربوزک، لچک وهنه، تر مخ لوپټه تاوونه.

**بوزي بنده** (būzibánda) ص. نب. ۱) محتاج، اړ، بې وسه؛ ۲) احمق، بې وقوف.

**بوزېدل** (būzedә́l) مص. ل. بزېدل، د مستو یا خمیري زیات تریوېدل.

**بوزېده** (būzéda) ص. ښځ. م. ۱) وروست، خوسا؛ ۲) خمیره شوی؛ ۳) مست بوتی.

**بوزینه** (būziná) ص. ښځ. م. ۱) بوزی، وزې یې، د وزې ځرمن؛ ۲) د رنجو رنجلومه، لجرومه، د وزې له ځرمني نه د رنجو کڅوړه.

**بوژ** (búž) ص. نر.م. ۱) ږد اواز؛ ۲) غونډ، یو ځای، ټول، خوندي، جمع.

**بوژغرک** (būžğarák) نر.م. یو ډول نبات دی.

**بوژه** (buža) ص. ښځ. م. ځیرلی، شلېدلی، بژه.

**بوژغاړی** (būžğáṛay) ص. نر.م. بغی، ناست غاړی، بغ مری، ناست اواز.

**بوژول** (būžawә́l) مص. مت. ۱) ږدول، بغول، په ډېرو چغو اواز کښېنول؛ ۲) بیژول، یو ځای کول، غونډول، سره راټولول.

**بوژی** (búžay) نر.م. بوی اوښ، مایه اوښ، اوښ چې غوړونه یې واړه او زیاتې ورې ولري.

**بوژېدل** (būžedә́l) مص. ل. ۱) ږدېدل، بغېدل په ډېرو چغو سره د اواز کښناستل؛ ۲) جمع کېدل، یو ځای کېدل، ټولېدل، غونډېدل.

**بوږ** (bóẓ) ص. نر.م. ۱) ځیږ اواز؛ ۲) غونډه، جمع، یو ځای، غونډ.

**بوږبی** (bozbáy) ښځ.م. کیشکره، کیږکه، ږبی، هککه، یو ډول مرغۍ ده.

**بوږدروهل** (bozdrohál) مص. مت. جوړه تلل، ځنگ په ځنگ تلل.

**بوږغاړی** (bozğáṛay) نر.م. هغه څوک چې اواز یې ناست یا خپکی اواز ولري.

**بوږند** (bozánd) نر.م. بوږنوونکی، دهشت انگېز.

**بوږنول** (būznawә́l) مص. مت. بېږنول، وېرول، ډارول.

**بوږنېدل** (boznedә́l) مص. ل. بېږنېدل، وېرېدل، ډارېدل.

**بوږه** (búẓa) ښځ. م. ۱) بږه، نیولې، ناست غاړې؛ ۲) لوری، سیمه، علاقه، چاپېریال، غاړې.

**بوږهار** (būẓahā́r) نر.م. بږهار، بغهار.

**بوږی** (búẓay) نر.م. بوڅی، بوزی، هغه اوښ چې غوړونه یې ځک وي.

**بوږېدل** (būẓedә́l) مص.ل. اواز کښناستل، بغېدل، مری کښناستل، بږېدل.

**بوږې غاړې** (būẓeğáṛe) ښځ. م. ناستې غاړې، ناست اوازونه.

**بوس** (bús) جن. ۱) سپین وابنه، بوز، پروړه، میده شوې دروځه او سواره؛ ۲) سی د اوږو گزاری؛ ۳) ص. نر.م. بېکاره، بې خونده، بې مانا.

**بوسات** (būsát) نر.م. تاثیر کونه، اغېز کونه.

**بوساړه**[1] (būsā́ṛa) ښځ. م. ۱) دبوسو انبار، بوس چې د څو ودرول شویو کتونو منځ کې واچوي او ښه یې تخته کړي؛ ۲) د غنمو او اوربشو د وچو وښو انبار کوټه؛ ۳) لټ سړی؛ ۵) وهنه، ټکونه.

**بوساړي** (būsā́ṛi) ښځ. م. اړتاواکې خبرې، کاواکه خبرې، گډه وډه وینا، چټیات.

**بوس بادو** (būsbādū́) ص. نر.م. باټو، لاپو.

**بوس بادي** (būsbā́di) ښځ. ج. دوزې، خوشې خبرې

**بوس برباد** (būsbarbā́d) ص. نر.م. عبث، بې فایدې، بې گټې، بې مطلبه، خوشې.

**بوستان** (būstā́n) نر.م. ۱) باغ، بڼ، دگلونو ځای؛ ۲) د سعدي د اشعارو مجموعه.

**بوسړ** (būsáṛ) نر.م. سکروټې، لړلی اور، ځل انگار، سورانگار، تازه شوی اور.

**بوسکارل** (būskārә́l) مص. مت. ۱) المسول، پارول؛ ۲) اس پونده کول، غوېې چوکه کول.

**بوسکی** (bū́skay) نر.م. یو ډول سوندینه توته ده.

**بوسه** (bū́sa) ص. نب. ډډ، ډډ بډ، دوس، پړسېدلی، چاغ او بې زور سړی.

**بوش** (bū́ṣ̌) نر.م. بانس، بانس، بانگس.

**بوښت** (bóṣt) ص. نر.م. په ختو، پلندیو (تمبلی) کې نښتی.

**بوښتوب** (boṣtób) نر.م. ۱) بوښتیا، بوښتوالی؛ ۲) په چکړو او ختو کې نښتنه.

**بوښتونه** (boṣtawána) ښځ.م. نښلونه، انښونه، بوښتونګ، په چکړو کې بندونه.

**بوښته** (boṣtá) ښځ. م. بوخته، جبه.

**بوښتېدنه** (boṣtedána) ښځ. م. نښلېدنه، په ختو کې بندېدنه.

**بوښند** (būṣánd) ص. نر.م. خفه، غمجن، زهیر، خواشینی، اندېښمن.

**بوښه** (bowṣá) ښځ. م. لرې بیدیا، لرې سارا.

**بوغ** (bū́ğ) ص. نر.م. ۱) ناستې مری، لوېدلی غړ؛ ۲) بدشکله؛ ۳) خفه؛ ٤) نر.م. د لرگي کاسه، توتی، کونډی؛ ۲) غړ؛ ۵) ص. نر.م. بوک، بوق، پړمخ، سر په ځمکې.

**بوغتوب** (būğtób) نر.م. بوغتیا، بوغوالی، د اواز کنښېناستنه، ډډوالی.

**بوغده** (boğdá) ښځ.م ۱) ستوه، پښقوزه؛ ۲) بم، ختمین بم، ماله یې بم، سور رنگی بم.

**بوغدی** (boğdáy) ښځ. م. د سرنگ سوری، هغه سوری چې په غرو کې د لارو جوړولو لپاره له باروتو نه ډکېږي.

**بوغره** (būğrá) ښځ. م. (ج. بوغرې) ۱) کورگی، کوډله، غار؛ ۲) خاوره، پوله او برید؛ ۳) برقع، بوقره، چادري؛ ۲) زنځیر پېچ.

**بوغلی** (bū́ğlay) نر.م. هغه ښکلی دسمال، چې د ناوې له کوره زوم ته ورکول کېږي.

**بوغمه** (bóğma) ښځ.م ۱) دځارویو یو ډول ناروغي ده؛ ۲) نس خوږی، د خېټې درد.

**بوغو** (būğū́) نر.م. دروی، ښکر، لویه شپېلۍ.

**بوغول**[1] (būğawә́l) مص. مت. ۱) چغول، غږول؛ ۲) اواز کنښېنول، غړ خپول، غړ ډډول.

**بوغول**[2] (boğawә́l) مص. مت. بوکول، سر په ځمکې کول، پړ مخ کول، په گونډو کول.

**بوغه** (boğá) ښځ. م. د تمباکو او چرسو نښه؛ ۲) نښه، غره توب، کلانکاري.

**بوق** (bū́q) نر.م. ۱) بوغو، برغو، ښکر، شپېلۍ، تولی؛ ۲) غټ بانگي (نرچرگ).

**بوک**[1] (bók) نر.م. ۱) گوپ، موږه، کوپ، د اوښ او غوایي د اوږې راوتلې جگه برخه؛ ۲) دبېډۍ راوتلې جگه برخه.

بوک[۲] (bűk) ص. نر. م. پرمخ، بوغ، پرشلورو.
بوکر (bokár) ص. نر. م. ۱) نبغ، نبشه، مغرور؛ ۲) مخروطي، مخروطه ډوله.
بوکره (bókra) ښځ. م. (ج. بوکرې) بوکه، بورکه، سلواغه، ډولچه، بوقه.
بوکرۍ (bokráy) ښځ. م. یو ډول بوټی دی.
بوکری (bokáray) ص. نر. م. ۱) غوځ شوی، جلا شوی (ماشوم د مور له تي ځخه)؛ ۲) نبغکی، نبغ نبغ کېدونکی، کلاټکاري.
بوکس (bóks) نر. م. سوک؛ سوک جنګي.
بوکسر (boksár) ص. نر. م. هغه څوک چې د سوک لوبه کوي، سوک وهونکی.
بوکسینګ (bokséng) نر. م. سوکماري، سوک وهنه، سوک جنګي، د سوک وهنې جریان.
بوکنۍ (būkanáy) ښځ. م. ج. ۱) بړومبی، حباب، د اوبو ډومبک، د اوبو ډوډوبی؛ ۲) مثانه.
بوکلی (būkálay) د پړۍ (مجسمې) مخروطي ډوله دربځی.
بوکوالی (būkwā́lay) نر. م. محدب کېدنه، سر او زنګنونه په ځمکه ایښودنه، کړوپېدنه.
بوکول (būkawā́l) مص. مت. ۱) محدب کول، کړوپول؛ ۳) په زوره مجبورول.
بوکه (bóka) ښځ. م. (ج. بوکې) بوقه، سلواغه.
بوکی (bū́kay) نر. م. یو ډول تکي تکي کوچنی خزنده ده چې اوږدۀ بریت لري.
بوکېدل (būkedā́l) مص. ل. کړوپېدل، پرمخ کېدل، سر پر ځمکه لګول، سر پر ځړی کېدل.
بوګ (bóg) ص. نر. م. ۱) ډډ، ګوګ، هغه شی چې منځ یې تش وي؛ ۲) پوده، وروست.
بوګر (bogár) نر. م. غشه، د سر غشي غوندې بوټی، هغه بوټی چې د نل په شېر وي.

بوګرچانه (bogarčā́na) ښځ. م. چڼ، وسپ، وسک، هغه لښتې چې د تیرانو د پابه اچول کېږي.
بوګرمار (bogarmā́r) فا. نر. م ۱) بوګری کوونکی، په ناحقه د بل چا د ځمکې خوړونکی؛ ۲) هغه سړی چې د جاروګانو لپاره بوګری خرڅوي.
بوګری (bogáray) نر. م. ۱) کوچنی پټی، هغه توټه ځمکه چې د مالک له خوا بزګر ته ورکول کېږي او حاصل ترې نه غواړي؛ ۲) ورکوټی درمند، د لېږي غلې درمند؛ ٤) ص. نر. م. بې شرمه، بې حیا.
بوګرا (būgrā́) ص. نر. م ۱) حلال شوی؛ ۲) ځوړېدلی ۳) نر. م. مج. د څیروونکي ځناور ښکار کېدل؛ ٤) چنه، نخود.
بوګړۍ (būgaráy) ښځ. م. ۱) چیچړی، ګیګړی، جغجغی، شوی؛ ۲) وره سپېره، کنه، کنې.
بوګنول (būgnawā́l) مص. مت. وګ. بړنول.
بوګه[۱] (bū́ga) ښځ. م. ۱) هندوانه؛ ۲) ص. نب. سره نښوتې، سره توله، غونجه شوي؛ ۲) پسته، نرمه، سسته لکه بوګه ځمکه.
بوګه[۲] (bogá) ښځ. م. له ځېګې سره یو ځای د پانګې، شتمنی، مال، متاع په مانا.
بوګۍ (būgáy) ښځ. م. ۱) خاورینه صراحي؛ ۲) خراب، د کاریز له کاره لوېدلی (کوهی یا سپرغه)؛ ۳) وران کورکی.
بوګی (bū́gay) نر. م. د ریل واګون، د اورګاډي ډبه.
بول[۱] (ból) نر. م. ۱) ژبه، قول، لوز، وعده، نېته؛ ۲) داو، زیاتونه؛ ۳) نوم ایستنه؛ ٤) د بلل د اوسني زماني د فعل ریښه؛ ٥) سروکی، بند.
بول[۲] (bā́wl) نر. م. بولې، رنې متیازې.
بولاق (būlā́q) نر. م. ۱) د ختک قبیلې یوه څانګه؛ ۲) پېزوان د پوزې یو ډول پسول دی.

**بولاني** (bolā́ni) نر.ج. پیېرکي.
**بولټ** (bólṭ) نر.م. رخه لرونکی فلزي آله چې په نټ کې تاوېږي (یا نټ په کې تاوېږي).
**بولډال** (bulḍā́l) ص.نر.م. مطیع، اهل، فرمانبردار.
**بولقه** (būlqá) ښځ.م. و.گ. برکه.
**بولک** (bolák) نر.م. ۱) بلوک؛ ۲) لېرشی، وړه غوټه، کوچنوټی با.
**بولل** (bolál) مص. مت. و.گ. بلل.
**بولله** (boláIa) ښځ.م. قصیده، اوږد شعر دی چې د ستاینو، عرفان، اخلاقو او دین موضوع گانې په کې بیانېږي. د بیتونو شمېر یې تر (۳۳) زیات وي.
**بولنتون** (bolantū́n) نر.م. قومانداني.
**بولنه** (bolána) ښځ.م. بولی، قومانده، بولی.
**بولوار** (bolwā́r) ص. نر.م. د تفریح لپاره لوی میدان چې گلونه او چمنونه ولري.
**بولندوی** (bolandū́y) نر.م. قوماندان.
**بولندويي** (bolandū́yi) ښځ.م. قوماندانی، کماندي، فرماندهي.
**بوله** (bolá) ښځ.م. ۱) خوړه کاسه، ښاروانې، پښه ماتې، هغه دودی چې زوم یې خپلې خسرگنۍ ته تیاروي ۲) ډنډوره؛ ۳) ص. نب. ساده، کم عقل، ناپوه؛ ٤) بې خبره، ناخبره، ناگاره.
**بولهوس** (būlhawás) ص.نر.م. عیاش، فحاش، د هوس تابع.
**بولې** (báwle) میتبازي، رنې میتبازي.
**بولی** (boláy) ښځ.م ۱) قومانده، قومانده ورکونه؛ ۲) لمسون؛ ۳) داو وهنه، د لیلام د بیې غږ.
**بوم**⁽¹⁾ (bóm) ص. نر.م. ۱) سست، لټ؛ ۲) ناگړی، نارکه، رند غوټکی؛ هغه غوایی چې غاړه یې په یېوه کې نه وي وتلې او جوتې شوی نه وي.

**بوم**⁽²⁾ (bū́m) نر.م. بومي، اصلي اوسېدونکی.
**بومي** (bū́mi) ص. نر.م. (ج. بومیان) د یو ځای اصلي اوسېدونکی یا اصلي استوگن.
**بومیا** (būmyā́) ص.نر.م. ۱) لارښود، رهبر، پېشوا، لارښوونکی؛ ۲) استوگن.
**بومیاگلوي** (būmyāgálwi) ښځ.م. لارښوونه، رهنمایي، پیشوایي.
**بومیه** (bū́mya) ښځ.م. بدرگه، بدرقه، ملتوب.
**بونجی** (bónjay) ص.نر.م ۱) مونجی، پیټ پوزی؛ ۲) مړاوی، شیته، جینجړ، جینگړ.
**بوند** (bū́nd) نر.م ۱) ځاځکی، قطره؛ ۲) ص. نر.م. ۱) الند، تیتکی؛ ۲) پرېکړی شوی.
**بونډاقر** (bonḍāqár) ص. نر.م. ۱) بې لکۍ، لکۍ ویستلی؛ ۲) تېدي، د تنگو او لنډو کالیو اغوستونکی؛ ۳) لغړه ونه، بونډۍ ونه.
**بونډه** (bonḍá) ښځ.م. ۱) مسته پېغله نجلۍ؛ ۲) بونډۍ گوته؛ ۳) دشهادت گوته.
**بونډی** (bónḍay) ص. نر.م. کوچنی سر پرېکړی لرگی؛ ۲) مونډی، بې لکۍ ځناور؛ ۳) هغه غویی چې ښکرونه نه لري.
**بونگه** (bongá) ښځ.م. یرغملبیه، هغه پیسې یا نور څه چې د غلا شوي مال یا تښتول شوي نفر د خلاصون لپاره ورکول کېږي.
**بونگی** (bongáy) ص. نر.م. مونجی بونجی، هغه څوک چې پوزه یې پرې وي.
**بونگېدل** (būngedál) مص. ل. بنگېدل، بنېدل، غونېدل، په پوزه کې غږېدل.
**بونه** (bū́na) ښځ.م. (ج. بونې) ۱) د سفر سامان، بارونونه؛ ۲) مقعد، سغی؛ ۳) د باز له وېرې دمرزانو او... رپېدنه؛ ٤) زیاته وهنه.
**بونیا** (būnyā́) ص. نر.م. پېژندگلو، بلد، واقف.

**بونېر** (bū́ner) نر.م. ۱) د يوې پښتني سيمې نوم؛ ۲) وچه گيا ، وچ واښه.

**بونيک** (bū́nik) نر.م. پېزوانې ، کلی گک ، بيني گک ، د بيبوې د تير په سر لرگی چې په سر باندې (الی) کې نښلول کېږي.

**بوڼ**[1] (bū́ṇ) نر.م. د مزروله پانو نه جوړ شوی پړی.

**بوڼ**[2] (bóṇ) نر.م. گوڼ ، د پزې يو ډول داسې مرض دی چې د پزې د بويلو حس له منځه ځي.

**بوڼکی** (būṇkáy) نر.م. د مچانو ا... بنهار.

**بوڼل** (būṇál) مص.مت. بنل ، پيرل ، دکټ يا زانگو او نورو په بوڼ باندې اوبدل.

**بوڼه** (bū́ṇa) ښځ.م ۱) بونوه ، لمبه؛ ۲) جن. سپېره ، سپېرونی ، بورنه ،هغه وچ اوره چې پېړۍ په کې لرلې کېږي او اوارېږي.

**بوڼهار** (būṇahā́r) نر.م. ۱) بنهار ،بنهدا ،د مچانو ډمبرو اواز؛ ۲) وررو خبرې ، زنهدا.

**بوڼی** (bū́ṇay) ص. نر.م. ۱) گڼی ، بونگی ، کونی ، څوک چې په پوزه خبرې کوي؛ ۲) نر.م. د سودا پيل ، دسودا ( اخيستلو او خرڅولو ) بريد.

**بوڼېدل** (būṇedál) مص.ل. بنگېدل ، بزېدل؛ د مچانو مچيو او... پرنگېدل.

**بوواری** (būwā́ray) نر.م. هغه خوسکی چې د شيدو غاښونه يې غورځولې نه وي.

**بوهاری** (būhā́ray) نر.م. له تي نه بېل شوی ماشوم يا څاروی.

**بوی** (bū́y) نر.م. ۱) وږم ، تېرم ، توږم ، د گلانو بوی ، د خرابو او ناولو شيزونو بوی.

**بوي** (báwi) نر.م. د ژرندې اړم ،د ژرندې دچل پټی.

**بويارة** (boyā́ra) ښځ.م. ۱) نښه ، علامه ، بېلگه ، لږ څه؛ ۲) د پالېز ترشکولو وروسته د هندوانو او... پاتې بوټي.

**بوی کښ** (būykáṣ) ص. نر.م. ۱) وږ سترگی ، څونسمار؛ ۲) هغه سپی چې بوی وهي.

**بويناک** (būynā́k) ص. نر.م. بوين ، بوی والا ، گنده ، خوسا ، ډډوځن ، ډډوزې کوونکی.

**بويه** (boyá) ق. ښايي ، بايد ، گوندې ، په کار ده ، لازم دي ، مناسب.

**به**[1] (ba) اد. ۱) د راتلونکې زمانې د جوړولو توری؛ ۲) د تېرې زمانې د کار کولو د دوام لپاره؛ ۳) د تېرې زمانې د امکاني حالت جوړونکيو اداتو څخه دی.

**به**[2] (bíh,bi) ص. نب. ښه ، غوره ، په زړه پورې.

**بها** (bahā́) ښځ.م. ۱) بيه ، ارزښت ، قيمت؛ ۲) قدر ، گرانښت.

**بهادر** (bahādár) ص.نر.م. زړور ، مېړنی ، تکړه.

**بهار** (bahā́r) نر.م. پسرلی ، څرمنی.

**بهاري** (bahā́ri) ص. نب. پسرلني د څرمني.

**بهاری** (bahārā́y) ښځ.م. جارو ، رېبځ ، بهری ، کانټه.

**بهاند** (bahā́nd) ص.نر.م. جاري ، بهېدونکی ، روان ، بهنده.

**بهانه** (bahā́na) ښځ.م. (ج. بهانې) پلمه ، بانه ، حيله ، چل ، عذر.

**بهاڼ** (bıhā́ṇ) نر.م. (ج. بهاڼان ، بهاڼونه) بيوڼ ، بياڼ ، بياڼ گی ، داس بچی.

**بهاڼ گی** (bıhā́ṇgay) نر.م. بياڼ گی ،کوچنی بهاڼ.

**بهاو**[1] (bahā́w) نر.م. بهېدنه ،جاري کېدنه ، جريان ، تگ ، روانېدنه.

**بهاو**[2] (bahā́w) نر.م.نرخ ، قيمت ، بيه ، ارزښت.

**بهبود** (bıhbū́d) نر.م. ۱) گټه ، نفعه ، فايده ، سود؛ ۲) ښه والی ، روغتيا ، جوړښت.

**بهتان** (buhtā́n) نر.م. تومت ، تور.

**بهتر** (bıhtár) نر.م. ۱) ص. نـر.م. پاگل، پوسني، بې حاله؛ ۲) ډېر بوډا، عمر خوړلی؛ ۳) ص. نر.م. زيات ښه، ډېر ښه، غوره.

**بهتري** (bıhtári) ښځ.م. ډېر ښه والی، گټورتوب.

**بهترين** (bıhtárin) ص. نر.م.ج. خـورا ډېر ښه، خورا غوره، تر ټولو ښه، وتلی، نامي.

**بهجن** (baján) نـر.م. ۱) د هندوانو مذهبي کتاب؛ ۲) په ختيـزې مـوسيقۍ کې هغـه لايې چې د سيمي کلاسيکې سندرې دي.

**بهر** (bahár) ق. ۱) د باندې، ورچنې، ورشنې، بېرون؛ ۲) نر. مجازاً لوی اودس ماتی.

**بهرنی** (bahránay) ص. نـــر.م. د بـانـدېنی، د باندې، بيرونی، د ورچنې.

**بهرو** (bahró) ص. ښځ.م. مو. بهـرول، له سهرنيو راگونو څخه يو راگ دی.

**بهروپ** (baharūp) نر.م. نخرې کول، ټوکې کول.

**بهروپيا** (bahrūpyá) ص.نر.م ۱) ټوکمار، نکلي؛ ۲) ټگ، مکار، دوکه باز، چلباز.

**بهروسه** (bahrósa) ښځ.م. برُوسه، باور، اعتماد.

**بهرول** (baharawál) مص. مت. بهرکول، د باندې کول، ورچنې ايستل، د باندې ايستل.

**بهرونه** (baharawána) ښځ.م. (ج. بهـرونې= صادرات) وړنه، صدور، اېکسپورټ.

**بهروي** (bahiráwi) ص. ښځ.م. بيروي، بيرومي، د سهرنيو راگونو له ډلې څخه دی.

**بهره** (bahrá) ښځ.م. برخه، ونډه، سهم، قسمت.

**بهره من** (bahramán) ص. نـر.م.ج. بهـره مند، بهره ور، د ښه نصيب خاوند، بهره ياب.

**بهری** (báhray) نر.م. جارو، کانته، ريبځ.

**بهله** (bahlá) ښځ.م. هنبمه، پسرلنی توره وربېځ. د وربېځو توره لړه، غورسکه وربېځ.

**بهنځ** (bahánǰ) نر.م. بهنځی، بهير، مجرا.

**بهند** (bahánd) ص. نـر.م. بهـانـد، روان، جاري، تلونی، بهېدونکی.

**بهنده** (bahánda) ص. نب. بهانده، روانه، جاري.

**بهـنه** (bahána) ښځ.م. ۱) د کـوچـنيانو د پيکي وينښتان چې د شگـون پـه نيت سـاتل کـېږي؛ ۲) د قمچينې د سر ځوړندی.

**بهول** (bahawál) مص. مت. روانول، جاري کول.

**بهه** (bahá) ښځ.م. گـرگی، نېزه وړی، گنگړ خلي، نېز راوړی لرگی يا خس و خاشاک.

**بهي** (buhí) نر.م. بوهی، يو ډول مېوه ده.

**بهی** (baháy) ښځ.م. ۱) اوی، باولی، دکوهي تل؛ ۲) سو واله، هغه بياله چې مستقلې اوبه په کې بهېږي؛ ۳) پيتکې، کـوپه، د کوهـي پاټکی؛ ٤) د ډيوې د ايښودلو تاخچه.

**بهيانه** (bahyā́na) ص. ښځ. م ۱) قيمتي، ارزښناک ۲) ښځ.م. بهيانه، بيانه.

**بهيدا** (bahedā́) ښځ.م. بهېدنه، بهېدنگ.

**بهيدانه** (buhidānā́) ښځ.م. د بهی دانې.

**بهير** (bahír) نر.م. (ج. بهيرونه) ۱) قطـار، کـتار، قافله، کاروان؛ ۲) لړی؛ ۳) گڼه، ازدحام.

**بې** (bé) ښځ.م. ۱) د «ب» تـوری تلفـظ او اواز؛ ۲) اد. پرته، بغير، غير، سوا، بدون.

**بيا** (byā́) ق. بل ځل، بل کرت، دوباره، پس.

**بې آب** (beā́b) ص. نـر.م. ۱) بې عـزته، سپک؛ ۲) وينځلی، بې پته؛ ۳) بې اوبو، بې تمه.

**بې اېرې** (beıbré) ښځ.م. بې حاصله ځمکه.

**بې ابي** (beā́bi) ښځ.م. رسوايي، بې عزتي.

**بيابان** (byābā́n) نر.م. دښت، بيديا، مېره، داگ.

**بيابانگرځی** (byābāngárǰay) ص.نـــر.م. بيابان گرځېدونکی، بيابانگرد، صحرانورد.

بیابیا (byābyá) ق. د هر ځـلـه، په وار وار، پرله پسې، څو ځله، په مکرر ډول.

بیاپیلونه (byāpaylawána) ښځ.م.مت. بیا پیلول بیا پیلونګ، بیا شروع کول.

بیاتي (byấti) ښځ.م. (ج. بیاتی) قیچي.

بیاج (byấj) نر.م. ۱) سود، ګټه؛ ۲) خـریده خوری، په بیې د خوراک د غلې اخیستنه.

بیاجګر (byājgár) فـا.نر.م. بیا جګـری، غله په بیه اخیستونکی.

بیاځلي (byaǰali)، تکراري، مکرر، بیاپېښې،

بې ارزي (beārzí) ښځ. م. بې کسي، محتاجي، بې قدري، بې خوندي، بې عزتي.

بې ارزې (beárze) ص.نب. بې ارزښتنه، بې قدره.

بیارغاونه (byāraǧawaná) ښځ.م. بیارغونه، بیاجوړونه، بیا سازونه.

بې اړیکې (beāṛike) ښځ.م.ج. نـا اړیکـې، نااړیکن، نا اړونده، بې ربطه.

بیاسته (bıyāstá) ښځ.م. (ج. بیاستې) غټ پړی، مضبوطه رسۍ، ویاسته، پړی، رسۍ.

بیاض (bayấz) نـر.م. ۱) سپینوالی، صفاوالی؛ ۲) دیوان، د اشعارو کتاب.

بیاله (byāl(á,a) ښځ. م. ویاله، ویله، یاله.

بیاپېښې (byāpeṣáy) بیا بیا پېښېدونکی.

بیاپېښې ترنګ (byapeṣ̌taráng) تکرارېدونکی ترکیب.

بیاموندل (byấmūndal) مص.مت. په لاس راتلل، پیدا کول، بیا میندل.

بیان (bayấn) نـر.م. ۱) مقوله، قـول؛ ۲) وینا، وعـظ، تقریر، خبرې؛ ۲) شـهادت، ګـواهي؛ ٤) سپړنه، تشریح کونه، څرګندونه.

بیانونه (bayānawaná) ښځ.م. وینا کـول، تقریر کول، تشریح کول، خبرې پیل کول.

بیانه (bayấná) ښځ. م. تپې، تاپې، یو څه پیسې د یو شي د اخیستلو په وخت کې د مال خاوند ته ورکول.

بیانېدل (bayấnedál) مص. ل. ویل کـېدل، بیان کېدل، تشریح کېدل، سپړل کېدل.

بیاهم (byāhám) ربط. دوهم ځل، په مکرر ډول، نور.

بې ایمانه (beīimấna) ص. نب. ۱) بې عقیدې؛ ۲) بې غیرته؛ ۳) دروغجن، ټګ، دوکه باز.

بې ایماني (beīimấní) ښځ.م. ۱) بې ایمانتیا، بې عـقیـده ګي؛ ۲) بې غیـرتي، بې زړه توب؛ ۳) دروغجني؛ ٤) ټګماري.

بې باقول (bebāqáwal) مص. مت. حساب کـتاب خلاصول، پوره پرې کول، د چا حق ورکول.

بې باقونه (bebāqawána) ښځ.م. حساب کـتاب خلاصونه، پوره پرې کونه، د چا حق ورکونه.

بې باقېدنه (bebāqedaná) ښځ. م. حساب کتاب خلاصېدنه، پوره پرې کېدنه، د چا حق ورکونه.

بې باک (bebấk) ص.نر.م ۱) بدفعله، بداخلاقه؛ ۲) بې پروا، بې ډبه، بې ترسه.

بې باوره (bebāwará) ص. نب. بې اعتماده.

بې بخت (bébaxt) ص. نر.م. بې طالع، بدمرغـه، بدنصیب، بدقسمت، بدبخته.

بېبدی (bebudáy) ښځ.م. پېشقـوزه، سـتوه، لوبه چاره، چاره، پېشقبزه.

بې برخې (bebárxe) ص. نب. ۱) بدنصـیب، بې بهره، بدطالع؛ ۲) محروم، نا امید.

بې بره (bebára) ص. نب ۱) بې مېوې، بې بـاره، بې ثمره، بې حاصله؛ ۲) کم سورې.

بې بها (bebahấ) ص.نب. ۱) بې قدره، بې ارزښته، ورېا؛ ۲) ډېر اعلی، ممتاز.

**بي بي** (bibí) ښځ. م. ۱) میرمن، د کور مشره؛ ۲) ابی، ادي؛ ۳) ښځې ته د درناوي نوم.

**بي بي اوښه** (bibiúṣa) ښځ. م. بودۍ، غټ ملخ، اوښکۍ.

**بې بنسټه** (bebansáṭa) ق. بې سر و بوله، بې بنیاده، دروغ، بې اساسه.

**بیپار** (baypár) نر. م. (ج. بیپاران) وپار، لین دین، په سوداګرۍ او دوکاندارۍ کې اخیستونکی او خرڅوونکی د راکړې ورکړې اړیکه سره ساتي.

**بې پامتوب** (bepāmtób) نر. م. بې فکري، بې پروایي، بې احتیاطي، بې هوشي.

**بې پامه** (bepā́ma) ص. نب. بې فکره، بې پروا، بې احتیاطه، بې هوشه.

**بې پایه** (beyā́ba) ص. نب. بې ایا، یاوه، بې سر و سامانه، بې ګودره، بې ایو.

**بې پایه** (bepā́ya) ص. نب ۱) د بېرزیات، بې اندازه ۲) بې اصل او نسب سړی؛ ۳) بې وف؛ ٤) بې ننه.

**بې پته** (bepáta) ص. نب. ۱) سپک، بې عزته، بې ننګه؛ ۲) بې وعدې، بې وفا، بې ژبې.

**بې پتي** (bepáti) ښځ. م. ۱) بې عزتي، سپکاوي؛ ۲) بې لوزي، وعده خلافي.

**بې پتې** (bepáte) ص. نب. بې ادرسه، بې درکه، لادرک، نامعلوم، ورک.

**بې پتېدل** (bepatedál) مص. ل. بې عزته کېدل، بې ابرو کېدل، سپکېدل، شرمېدل.

**بې پرته** (beprā́ta) ص. نب. بې باکه، بې شرمه.

**بې پرتې** (beprā́te) ص. نب. حریص، خېتور، ګېډور، نسور، ورستړګی.

**بې پرتي** (beprā́ti) ښځ. م. بې باکي، بې شرمي، د بېره عېبدنه.

**بې پرده ګي** (bepardági) ښځ. م. ۱) بې عزتي، بې ابرو ګي؛ ۲) ښکاره والی، ښکاره مخ.

**بې پردې** (bepárde) ص. نب. ۱) شرمېدلی، بې عزته؛ ۲) لوڅ، بربنډ؛ ۳) راز ښکاره کوونکی، راز پاشه؛ ٤) محرم.

**بې پروا** (beparwā́) ص. نب. بې غوره، بې فکره، ببغمه؛ ۲) مغرور، خود سره، مدمغ.

**بې پرې** (bepáre) ق. یوازې، بې ملګرې، ګوښې.

**بې پرده ګي** (bepardági) ښځ. م. و ګ. بې پرده ګي

**بې پلاره** (beplā́ra) ص. نب. ۱) یتیم؛ ۲) مج. حرامي، ارموني، متهونګی.

**بې پلوه** (bepaláwa) ص. نر. ښځ. م. بې پرې، بې جنبې بې طرفه.

**بې پلوي** (bepaláwi) ښځ. م. ناپېیلتوب، بې طرفي.

**بې پیره** (bepirá) ص. نب. ۱) سرتمبه، پخپل سر؛ ۲) بې مرشده؛ ۳) بدمذهبه، بې عقیدې؛ ٤) بې رحمه، سخت زړی.

**بې پیسې** (bepáyse) ص. نب. ۱) خوار، غریب، مفلس؛ ۲) مفت، وړیا، لایه، هسې.

**بېت** (bét) ص. نر. م. جاسوسي، مخبري، څارګري.

**بیت** (báyt) نر. م ۱) ددوو مربوطو مصرعو مجموعه، کله یو دور جوړ وي؛ ۲) ور، مکان، خونه.

**بې تا** (betā́) ق. پرته له تانه، چې ته نه وې، یوازې.

**بې تابه** (betā́ba) ص. نب. ۱) بې طاقته، کمزوری، ناتوانه؛ ۲) بې قراره، نا آرامه.

**بیتار** (baytā́r) نر. م. بېطار، د حیواناتو ډاکټر.

**بیت المال** (baytūlmā́l) نر. م. سرکاري خزانه، هېوادنۍ خزانه، د اسلامي دولت خزانه.

**بې تجربګي** (betajrūbági) ښځ. م. تجربه نه درلودنه، خامي، ناوارډي.

**بې تجربه** (betajrubá) ص. نب. خام، ناوارد.

**بې ترتيبه** (betártiba) ص. نب. ګډوډ، خوروور، پرېشانه، بې نظمه، بې انتظامه.

**بې ترسه** (betársa) ص. نب. ۱) زړور، تکړه؛ ۲) بې رحمه، سخت زړی، ناترسه؛ ۳) ظالم.

**بې ترکيبه** (betárkiba) ص. نب. ۱) خالص، نږه، سوچه، صاف؛ ۲) غيرمنظم، بې قاعدې.

**بې تعليمي** (betáslimi) ښځ.م. ناپوهي، بې سوادي، اميتوب.

**بې تقصيره** (betáqsira) ص. نب. بې ګناه، بې قصوره، بې خطا.

**بې تکه** (betuká) ص. نب. بې مناسبه، نامناسبه، بې طريقې، فضول، خوشې.

**بېتله** (betála) ښځ. م. بېتلى، بېتکى، لښتې او دام چې له لرګي څخه جوړېږي.

**بې تمې** (betáme) ص. نب. بې اسرې.

**بې تميزه** (betámiza) ص.نب. بې ادبه، بې لحاظه، بدتميزه، بې سنجشه، بې ډبه.

**بې تنه** (betána) ص. نب. بې تنې، بې بدنه.

**بې توپيره** (betáwpira) ص.نر.ښځ.م. بې تفاوته، بې پروا، بې اعتنا.

**بې تورې** (betúre) ص. نب. ۱) خالي لاس، تش لاس؛ ۲) وېرېدونکى، ډارن.

**بې توجه** (betawáju) ص. نب. بې پامه، بې پروا، بې فکره، بې سنجشه.

**بې توښې** (betóṣe) ص. نب. ۱) بې زېرمې، بې اذوقې، بې اسبابه؛ ۲) بې ښې، بې کاره.

**بې توله** (betóla) ص.نب ۱) بې اعتباره، بې وعدې ۳) بې حسابه، بې اندازې؛ ٤) فضول، خوشې.

**بې تولې** (betóli) ښځ.م ۱) بې نرخې، بې رواجې؛ ۲) د تللو له کاڼي سره برابر نه تلنه.

**بېته** (betá) ښځ.م. مردکى، مردکه، ګينې.

**بېتې** (béti) ص. نب. جاسوس، مخبر.

**بېټ** (béṭ) نر.م. ۱) د پښتنو د يوه مشر او ستانه نيکه نوم؛ ۲) ص. نر.م. کړوپ؛ ۳) مسلاتې، مرسته، ننګه؛ ٤) بټ، بې اوبو، وچه دښته؛ ۵) د بيديو يو ډول لوبه؛ ۳) ناست، چو، خې.

**بې ټانګه** (beṭánga) ص. نب. ۱) چټي، پوچ، عبث؛ ۲) ښځ.م. مېړانه، مېړنتوب.

**بيټرى** (biṭráy) ښځ.م. بېټرى، بالټې، بالښتې، مساله، سيل.

**بېټک** (beṭák) نر.م. ۱) حجره، مېلمستون، دېره؛ ۲) وړه کوچنۍ کوټه.

**بې ټکانې** (beṭakâne) ص. نب بې ټکاوڼې، بې کوره، بې خونې، بې مېنې، بې استوګنځې.

**بيټول** (biṭawál) مص. مت. کړوپول، چوکول، بوتول، خې کول، په ګونډو کول.

**بيټه** (biṭá) ښځ.م. (ج. بيټې) هغه کونجاره چې د تيلو له ګانۍ څخه راوځي.

**بېټه** (beṭá) ښځ.م. ۱) د غره لمنه، غونډۍ؛ ۲) پنډ غالى، شپول؛ ۳) ډبه، د تېلو د ساتلو څرمني لوښى.

**بېټۍ** (beṭáy) ښځ.م.ج. ۱) هغه مرۍ چې د سرو زرو په اميل کې پېيلې شوې؛ ۲) شله غوښه.

**بيټې بيابان** (biṭebyābân) نر.م. بټې بيابان، سوړ اړه، وچ بيابان، وچه ميره، سوړ ډاګ.

**بې ثباته** (besubâta) ص. نب. هرحاليز، سست، متغير، متزلزل، په يو فکر نه اوسېدل.

**بې ثمره** (besamára) ص.نب. بې مېوې، بېحاصله، بې نتيجې، بې ګټې.

**بېج** (béj) نر.م. ۱) تخم، تومنه؛ ۲) اصل، نسل؛ ۳) نطفه، توکم؛ ٤) هغه نښانونه چې له فلز يا

پلاستیکي او دخاصو مناسبتونو سمبولونه گرځېدلي دي.

**بې جادې** (bejáde) ص. نب. بې لارې، کږه، بې اصوله.

**بیجاغلی** (bijāğláy) ښځ.م. یو ډول د زرو سکه چې د یو ولسو نخودو په وزن وه او په (۱۲۷۰) کې یې په کندهار کې رواج درلود.

**بیجک** (biják) نر.م. هغه سند چې خرڅوونکی د جنس ډول او اندازه په کې لیکي او اخیستونکی ته یې ورلېږي.

**بیجلي** (bijlí) ښځ.م. و ګ. بجلي.

**بیجن** (bijan) ص. نر.م. ۱) سپېرن، له سپېرو ډک؛ ۲) تخمي، بېخ لرونکی، تخم لرونکی.

**بیجور** (bejór) نر.م. یو ډول ونه ده.

**بې جوړې** (bejóṛe) ص. نب. ۱) بې مثله، بې نظیره، بې ساري؛ ۲) یوازې، ګوښې.

**بیچ** (bič) نر.م. ۱) د یوې ګرانې مسالې د حل لاره؛ ۲) طاقت، وسه، توان، سیک.

**بېچاره** (bečā́ra) ص. نب. بې وسه، بې وسیلې.

**بېچاري** (bečā́ri) ښځ.م. بېکاري، بې وسي، خواري، غریبي.

**بېچارې** (bečā́re) ص.نب ۱) بېکاره، بې روزګاره، وزګار؛ ۲) مجبور، ناچار.

**بیچانه** (bičāṇá) ښځ.م. کټ ځادر، روجایي، پالنګ پوښ، سوزنی.

**بیچاوڼ** (bičawáṇ) نر.م. د سالون لوی فرش.

**بېچاونه** (bečāwáṇa) ښځ.م. (ج. بېچاونې) ۱) بستره؛ ۲) کوچنی فرش، ورکوټی فرش.

**بیچڼ** (bičáṇ) نر.م. خامکدوزي ځادر، خامتا.

**بې چورته** (bečúrta) ص. نب. خپه، بې فکره، بې پامه.

**بیچه** (bičá) ښځ.م. پېرشانې، شینځه، پیسه، لاره، هغه سپینه کرښه چې په سر کې د ویښتو له اړولو څخه پیدا کېږي.

**بې څښتنه** (becaṣtána) ص.نب. ۱) بې خاونده، بې مالکه (مال)؛ ۲) بې مېړه.

**بې څنډې** (becánḍe) ص. نب. بې غاړې.

**بې څوکه** (becóka) ص نب. بېکسه، بې اسرې.

**بېڅه** (becá) ښځ.م. یو ډول غرنی بوټی دی.

**بې ځانه** (bejā́na) ص. نب. ۱) له ځانه ناخبر؛ ۲) بې هوښه، بې سده؛ ۳) کمزوری، ډنګر.

**بې ځایه** (bejā́ya) ص.نب ۱) بې موقع، ناموزون، عبث؛ ۲) بې کوره، بې مسکنه.

**بېځل** (bejál) نر.م. ۱) تکر، شنډی، د سېلاب له اوبو نه د بچولو لپاره له کانو او بوټو څخه جوړه شوې پشتې؛ ۲) د کانو ډېرې، دوکانچه، ځلی ۳) دکانو دېوال؛ ٤) په قبر د کانو ځلې جوړول؛ ۵) ښځ.م. بېزل، بېځله، ګړونجی، ګړونج.

**بېځنځه** (bejanjá) ص. نب. لټ، سست، تنبل، تنبل، ناراسته، الڅی.

**بې ځنډه** (bejanḍá) ق. ۱) بې ډیله، بې وقفې، بې له معطلۍ؛ ۲) وختي، وار دواره، سمدلاسه.

**بې ځواکه** (bejwā́ka) ص. نب. کمزوری، بې سیکه، ناتوانه، ډنګر (خوار).

**بېځه** (bejá) ښځ.م. شنختنه، دلحد تبی، هغه تیږې چې تیوزه باندې ایښودل کېږي.

**بې حاصله** (behasilá) ص. نب. بې ثمره، بې ګټې، بې فایدې، بې نفعې.

**بې حاله** (behā́la) ص.نب. ۱) بې سده، بې هوښه، ضعف؛ ۲) بادساره، بادساري.

**بې حده** (behā́da) ص. نب. بې اندازې، ډېر، ډېر زیات، له حده وتلی، بېخي زیات، لایتناهي.

**بې حرکته** (beharakáta) ص. نب. ۱) ساکن، ولاړ، نه خوځېدونکی؛ ۲) غیر فعال.

**بې حرمته** (behurmáta) ص. نب. سپک، بې عزته، بې آبه.

**بې حسابه** (behisā́ba) ص. نب. ۱) بې شمېره، بې اندازې؛ ۲) بې پوښتنې؛ ٤) بدچلنده.

**بې حسه** (behisá) ص. نب. ۱) بې حرکته، مړ پړ، سست؛ ۲) بې درده، بې احساسه.

**بې حوصلې** (behawslé) ص. نب. بې صبره، ژر قهرېدونکی، بې زغمه.

**بې حیا** (behayā́) ص. نب. بې شرمه، بې سترګو، سپین سترګی.

**بېخ** (béx) نر. م. ۱) ویخ، جړ، ولې، جرړه، ریښه؛ ۲) بنیاد، آر؛ ۳) تل؛ ٤) تاداو، بنسټ.

**بې خاونده** (bexāwánda) ص. نب. ۱) بې څښتنه؛ ۲) بې سرپرسته؛ ۳) بې مېړه.

**بې خبره** (bexabára) ص. نب. ۱) بې معلوماتو، ناخبره، ناآګاه؛ ۲) ناڅاپه.

**بېخجن** (bexján) ص. نر. م ۱) بېخچن، له بېخه، له ریښو، له ولې؛ ۲) له آره.

**بې خجه** (bexája) ص. ښځ. م. بې فشاره.

**بې خرخشې** (bexrxáše) ښځ. ج. بې اړنګه، بېشکه، بې غل و غش، پاک او صاف.

**بې خرتې** (bexráte) ص. نب. بې حسابه، بې اندازې، بې شمېره، ډېر زیات.

**بې خرتې** (bexráte) نر. م. بې موقع کار، پخوا له وخته، بې وخته کار، بې ځایه کار.

**بې خرڅه** (bexarcá) ص. نب. ۱) مفلس، تش لاس، خالي جېب؛ ۲) بې توښې.

**بې خطا** (bexatā́) ص. نب. بې تېروتنې، بې قصوره، بې سهوې، بې غلطې.

**بې خطره** (bexatára) ص. نب. له خطر پرته، بې وېرې، بې ترسه، بې ضرره، بې نقصه.

**بې خوبه** (bexobá) ص. نب. هغه چا چې خوب نه وي کړی.

**بې خوبي** (bexóbi) ښځ. م ۱) بېخوابي، بېداري، نه بیدېدنه؛ ۲) نارامي، ګنګستیا، ګیچوالی.

**بې خوده** (bexwáda) ص. نب. بې سده، بې هوشه، بې حسه، خلسه.

**بېخوله** (bexóla) ص. نب. بدرنګه، بدشکله، د خرابې څېرې خاوند، د بدې بڼې خاوند.

**بې خولې** (bexwále) ص. نب. عاجز، بې ژبې، آرام، غلی، پټه خوله.

**بې خونده** (bexwánda) ص. نب. ۱) بې مزې، پیکه، بې مالګې؛ ۲) بې ګټې، چټې.

**بې خوندي** (bexwándi) ښځ. م. ۱) بې مزې توب، پیکه توب؛ ۲) بې اغېز کول.

**بې خونې** (bexū́ne) ص. نب. بې کوره، بې مېنې.

**بېخي** (béxi) ق. سکېره، بالکل، له بېخه، کامله، قطعي.

**بې خیره** (bexáyra) ص. نب. ۱) شري، شرري، پساتي؛ ۲) بې ښې.

**بېدار** (bedā́r) ص. نر. م. ج. ۱) ویښ، د ویده ضد؛ ۲) فعال، تکړه، چالاکه؛ ۳) باخبر.

**بېدارول** (bedārawā́l) مص. مت. ۱) ویښول، له خوبه پاڅول؛ ۲) پوهول، هوښیارول، په غوږ وهل، خبرداري ورکول.

**بېداري** (bedā́ri) ښځ. م. ۱) ویښېدنه، ویښوالی؛ ۲) هوښیاري؛ ۳) تکړه والی، چالاکي.

**بې داغه** (bedāgá) ص. نب. ۱) بې عیبه، بې لکې، بې علته؛ ۲) نېکنام، صاف، سپین، باعفته، بې جوړې.

**بې دانه** (bedānā́) ص. نب. بې زړي، بې خستې، بې مندکې؛ لکه بېدانه انار.

**بې دخله** (bedáxal) ص. نب. ۱) بې غرضه، بې مدعا؛ ۲) ویستلی شوی، خارج کړی، شړلی.

**بې درده** (bedardá) ص. نب. ۱) بې تکلیفه، بې کړاوه؛ ۲) ظالمه، ناترسه، بې رحمه.

**بې درکه** (bedaráka) ص. نب ۱) بې پتې، لادرکه؛ ۲) دبېرزیات؛ ۳) بې اسرې، بې چارې.

**بې درنګه** (bedránga) ق. ۱) بې ډیله، بې ځنډه، فوراً، سمدلاسه؛ ۲) بې دریغه، بې صرفې.

**بې دستوره** (bedastūrá) ص. نب. بې رواجه، بې دوده، بې عنعنې، له نرخ نه وتلی؛ ۲) بې قانونه، بې لارې.

**بې دماغه** (bedımāğá) ص. نب. ۱) بې کبره، خاکساره؛ ۲) ناپوهه؛ ۳) قهرجن، عصبي.

**بې دمه** (bedáma) ص. نب. ۱) ستړی، ستومانه، بې حرکته، سست، لټ؛ ۲) بېدوده.

**بېدو** (bedó) ق. کټ مټ، عیناً، یو ډول، یو رنګ.

**بې دوا** (bedawā́) ص. نب. ۱) بې دارو، بې درملو؛ ۲) بې علاجه؛ ۳) بې دعا.

**بې د[illegible]تره** (bedawtára) ص. نب. ۱) ځمکه چې په حکومت کې مالیه و نه لري؛ ۲) بې ځمکې او بې جایداده.

**بې دوده** (bedodá) نبغ. م. بې قاعدې، مستثنا

**بیده** (bidá) ص. نر. م. ویده، خوبولی، په خوب کې.

**بېده** (bedá) نبغ. م. (ج. بېدې) وچ شنه لکه رشقه، شفتل (شوتل).

**بېدیا** (bedyā́) نبغ. م. ۱) وچه میره، صحرا، ډاګ؛ ۲) دباندې، بېروڼ، بهر [illegible]زجنې.

**بېدیانی** (bedyā́nay) ص. نر. م. (ج. بېدیاني) ۱) سارایي؛ ۲) دباندینی؛ ۳) پردی، بېګانه.

**بې دینه** (bedīná) ص. نب. ۱) بې مذهبه، کافر؛ ۲) بې قوله، بې ژبې، بې لوزه، بې وعدې.

**بې ډاډه** (beḍāḍá) ص. نب. بې اطمینانه، نا مطمئن، بې باوره، ناکراره.

**بې ډبه** (beḍába) ص. نب. بې ادبه، ناپوهه، بې عقله، بې نزاکته.

**بېډن** (beḍán) ص. نر. م. ج. شل پا پو، کچی، کچل، کجی، د کړې پښې والا.

**بې ډوله** (beḍáwla) ص. نب. ۱) بدرنګ، بد شکله، بدقواره؛ ۲) بې سلیقې، بې ذوقه.

**بېډون** (beḍawán) نر. م. ۱) [illegible]خنجک ونه؛ ۲) ځیږ، شډل، بدرنګ، ناتوږلی، ناتراش.

**بې ډوی** (beḍáway) ص. نر. م. بې باکه، بې پروا، بې فکره، بې سنجشه.

**بېډی** (beḍáy) نبغ. م. ج. بجله، سپینته.

**بې ذوقه** (bezawqá) ص. نب. بې علاقې، بې سلیقې.

**بیر** (bīr) جن. یو ډول مشروب دی چې له اوربشو نه لاس ته راځي.

**بېران** (berā́n) ص. نرم. ۱) وران، خراب، برباد؛ ۲) بې هوش، بې حسه، ضعیف.

**بېرانه** (b(e,ay)rānā́) (ج. بېرانې) ویرانه، کنډواله، خرابه.

**بېراني** (berā́ni) نبغ. م ۱) وراني، خرابي، ویجاړي؛ ۲) بې هوشي، بې خودي؛ ۳) بدمعامله ګي.

**بې ربره** (berábra) ق. بې رحمته، بې سستونزې.

**بېرته** (bertá) ق. ۱) پرانیستی، خلاص، برسېره؛ ۲) بیا، دویم ځل، بله پلا، بل ځل، پس ته؛ ۳) انږې، په فاصله.

**بېررا** (berrā́) نر. م. سپیر کونډکه، سپیر کونډه، جل، خراړه، سپیر کنډه، خړاکه، یو ډول مرغۍ ده.

**بېړه** (beṛá) ښځ.م. اوږد غوز، اوږد اکوړ، اوږد مسير، اوږد چارمغز.

**بيرغ** (bayráğ) نر.م. توغ، جنډه، بيرق.

**بېرګال** (bergál) دغوايي يا غوا دځرمنې ژی، ناړه.

**بېرندوکی** (berandūkay) ص. نر.م. ډارن، وېرندوکی، ډارېدونکی، وېرېدونکی.

**بېرنه** (berána) ښځ.م. وېرېدنه، ډارېدنه، ډار.

**بېرڼ** (beráṇ) نر.م. غرنۍ رشقه، غرېيزه رشقه.

**بېرو** (beró) ص.نب ۱) بې مخه، بې حيا، بې شرمه ۲) ښځ.م. بيورو، دفتر – سياسي بېرو.

**بيرو** (birū́) نر.م. چارګل، د پزې تيک.

**بيروبار** (birobár) نر.م. ګڼه ګوڼه، تېل ماتېل، ګڼه، ازدحام.

**بې روزګاره** (berozgārá) ص. نب. بې کاروباره، وزګار، بېکاره، بې مصروفيته، بې دندې.

**بيروکرات** (berokrā́t) نر.م. ۱) دبيروکراسۍ په اصولو معتقد؛ ۲) اص. مشکل تراش.

**بيروکراسي** (berokrāsí) ښځ.م. په اداري چارو کې اصول پرستي او تشريفات او په کارونو کې بېځايه ځنډونه رامنځ ته کول.

**بېرونه** (berawāná) ښځ.م. (ج. بېرونې) ډارونه، وېرونه، بېرونګ، ډارونګ.

**بې روه** (beráwa) ص. نب. ۱) بې لارې (ځای)؛ ۲) بې دوده او بې دستوره، بد چلنده.

**بېرويه** (berūyá) ص.نب. ۱) بې مخه، بې لحاظه؛ ۲) بې عزته، بې ابرو، ګستاخ.

**بېره** (berá) ښځ.م ۱) وېره، ډار؛ ۲) يو ډول ونه ده؛ ۳) دبېرې د ونې مېوه؛ ٤) د پزې چارګل؛ ٤) يو ډول دانه، يو ډول ننکی.

**بېرۍ** (beráy) ښځ.م. بېرۍ، د لوخې مېوه.

**بېرېدنه** (beredána) ښځ.م. ډارېدنه، ترهېدنه.

**بېړ** (beṛ) نر.م. ګڼه ګوڼه، غورلم، غوز بېړ، جقه، ازدحام، بېروبار.

**بېړا** (beṛā́) ص. نب. ساده، احمق؛ شوده.

**بېړاتوب** (beṛātób) نر.م. کم عقل توب، ساده توب، احمق توب، بې عقلي.

**بېړاګی** (beṛāgáy) ص. نر.م. ساده ګی، شوده ګی، د بېړا د تصغير شکل.

**بېړل** (beṛál) مص. مت. ۱) بېړې کول، بابېړې کول. يوه دعوا له سره بياکول؛ ۲) شړل، په بې عزتۍ ايستل.

**بېړندوی** (beṛandóy) ص.نر.م. تلواري، ترور، عجله کوونکی.

**بېړني اکر** (beṛanáyakár) نر.م. بېړني حالت، اضطراري حالت.

**بېړنۍ خونه** (beṛanáyxū́na) ښځ.م. تلوار خونه، عاجله کوټه، اتاق عاجل.

**بېړندی** (beṛandáy) ص. نر.م. (ج. بېړندي) ګړندی، تېز، وندی، چابک، تند، چالاک.

**بيړو** (biṛū́) ص. نب. تلواری، تېز، جلت، وندی، چالاک، تادي کوونکی، بيړه کوونکی.

**بيړه** (bíṛa) ښځ.م. چابکي، عجله، تېزي، تلوار.

**بېړه** (beṛá) ښځ.م ۱) د بحري بېړيو کتار؛ ۲) رساله، پلټن، تولی، جته، د کار يونټ.

**بېړۍ** (beṛáy) ښځ.م. ۱) کشتۍ، سمندري جهاز؛ ۲) ښځ.م. زولنې.

**بېړی** (beṛáy) نر.م. بابېړی، باوېړی، واوېړی، د يوې ناروغۍ بېړ ته راګرځېدنه.

**بېړۍ چلوونکی** (beṛaycalawū́nkay) قا. نر.م ماڼو، کشتيوان، کشتۍ چلوونکی.

**بېړۍ وال** (beṛaywā́l) ص.نر.م ۱) ماڼوګی، ماڼو، بېړۍ چلوونکی؛ ۲) د بېړۍ خاوند او مالک.

**بیز** (biz) نر.م. ۱) وز، سیرلی، پسه؛ ۲) شادو، نربیزو؛ ۳) دوزې بېډی، چوزی.

**بېز** (bẹ́z) نر.م. وچه ګیا، وچ واښه.

**بېزاره** (bezārá) ص. نب. وېزاره، ترپوزې، متنفر، لاس په سر، ستومانه.

**بېزاري** (bezā́ri) ښځ.م. وېزاري، زړه تورېدنه، ستوماني، مجبوري، کرکه، نفرت.

**بېزارېدنه** (bezāredána) مص. ل. وېزارېدنه، زړه تورېدنه، ستومانېدنه، ترپوزې رسېدنه.

**بېزاوه** (bezāwá) ص. نب. بې وسه، ناچاره، اړ.

**بې زړه** (bezṛá) ص. نب. ډارن، وېرېدونکی.

**بې زړه توب** (bezṛatób) نر.م. وېره، ډار، ترهه.

**بې زغمه** (bezğáma) ص. نب. بې حوصلې، کم حوصلې، بې طاقته.

**بېزل** (bezál) مص. مت. رفو کول، پیوندول، پرله پورې کول، تکونه ورکول، پنځرک کول.

**بیزو** (bizó) ښځ.م. شادو، شادي.

**بیزوتاړی** (bizotā́ṛay) ص.نر.م. ډارن، بې زړه.

**بیزوټی** (bizóṭay) نر.م. بیزوګی، شادوګی، بیزو مخی، د بیزوبچی، د بیزو تصغیر.

**بیزوګر** (bizogár) فا.نر.م. ۱) شادي وان، شادي باز، بیزوګډوونکی؛ ۲) نر.م. د وزو پوونکی.

**بیزی** (bizáy) نر.م. د وزې بېډی، د وزې سپېښته، د وزې چوزی، بزی، بیزیار.

**بې ژبې** (bežā́be) ص. نب. ۱) ګونګ، چاړا؛ ۲) پخ ژبی؛ ۳) بې قوله، بې وعدې، بې ژمنې.

**بې ژبي** (bežā́bi) ښځ.م. بې ژمني، وعده خلافي.

**بېږدن** (bezdán) نر.م. ګلداره خورجین چې ناوې یې له ځان سره د مېړه کره وړي.

**بې ږغه** (bežā́ğa) ص. نب. ۱) بې اوازه، بې غږه؛ ۲) بې خبره، بې له اجازې.

**بې سا** (besā́) ص. نب. بې روحه، چې سا و نه لري، د ساکښې ضد، بې سېلوې.

**بې ساري** (besā́ri) ص.نب. بې جوړې، بې نظیره، بې مثاله.

**بې ستره** (besátra) ص. نب. بې پردې، بې آبه، بې عزته، بې ابرو، لوڅ لغړ، بربنډ.

**بې سته** (besáta) ص. نب. نابللی، ناغوښتی.

**بیستی** (bistáy) ښځ.م. خامتا، کرباس، هغه نخي توکر چې په لاس اوبدل کېږي.

**بې سده** (besáda) ښځ.م. ۱) بې سوله، بېهوښه، بې حاله؛ ۲) بې عقل.

**بې سدي** (besádi) ښځ.م. ۱) بې خودي، بې هوشي ساډويي؛ ۲) بې عقلي، ناپوهي.

**بېسر** (besár) نر.م. پېزوان، نته، نتکۍ، د پوزې مندرۍ، د پوزې ګاڼه.

**بې سرتوب** (besartób) نر.م. ۱) خودسري، خپل سري، ۲) بې سرپرستي.

**بې سره** (besára) ص. نب. ۱) بې سرپرسته، بې مشره؛ ۲) بې لارې، له چتې وتلی.

**بې سري** (besári) ښځ.م. بې لارې، بې پروايي.

**بې سله** (besála) نر.م. هغه څوک چې د مالګې د نه خوړلو له امله د بې اشتهايي په ناروغۍ اخته شوی وي.

**بیسموت** (bismū́t) نر.م. یو ډول فلز دی.

**بېسن** (besán) نر.ج. ویسن، د چنو اوړه.

**بې سوله** (besūlá) ص.نر.م. بېخوده، بې هوښه.

**بې سکه** (besekā́) ص. نب. ناتوانه، بې طاقته، کمزوری، کم قوته، ضعیف.

**بې سیم** (bésim) ص. نر.م. هغه دستګاه چې د ږغ څپې له یو ځای نه و بل ځای ته له سیم یا لین پرته لېږدولای شي.

**بېشانه** (bešānā́) ص. نب. ۱) بې حسابه، د بېر زيات، بې اندازې؛ ۲) بې دبدبې، بې برمه.
**بې شرمه** (bešarmā́) ص. نب. بې حيا.
**بيشړ** (bišā́ṛ) نر.م. ۱) په ځانمو کې هغه ځای چې له ګنډلو څخه پاتې شوی وي؛ ۲) له وړېښمينې، وړينې او پېړې توتې څخه جوړ شوي شملې.
**بيشکله** (biškála) ښځ.م. خطره، حادثه، پېښه، کشاله، لانجه، پېښه.
**بې شکه** (bešáka) ص. نب. ۱) له شکه وتلې، بې ګومانه، ۲) رښتيا.
**بې شماره** (bešmārā́) ص. نب. تر حساب زيات، بې حده، د بېر زيات، بې شمېره.
**بې ښهاني** (beṣahā́ni) ص. نب. بې فايدې، بې ګټې، بې خيره، بې نېکۍ، بې ښې.
**بې صبره** (besábra) ص. نب. بې حوصلې، بې تامله، بې زغمه.
**بې ضرره** (bezarára) ص. نب. بې نقصانه، بې زيانه، بې تاوانه، ضرر نه رسوونکی.
**بې طاقته** (betaqáta) ص. نب. ۱) بې توانه، بې قدرته، بې سيکه؛ ۲) ناکرار، نارام.
**بې طالع** (betā́l؟) ص. نب. کم بخته، بدبخته، بدمرغه، بدچانسه.
**بې طرفانه** (betarafā́na) ق. بې غرضانه، غير جانبدارانه، عادلانه، منصفانه.
**بې طرفه** (betaráfa) ص. نب. بې ډلې، بې پرې، منځګړی، دريمګړی، ناپېيلی.
**بې طمعې** (betámʂe) ص. نب. بې توقع.
**بې عدالتي** (beʂadālā́ti) ښځ.م. بې انصافي، بې قانوني، د عدل او انصاف نشتوالی.
**بې عزتول** (beʂzatawā́l) مص. مت. سپکول، بې ابه کول، بې ابرو کول، بې پته کول.

**بې عزته** (beʂizā́ta) ص. نب. سپک، بې ابه، بې قدره، بې پته، بې ابرو، بې دوبه.
**بېعقل توب** (beʂaqā́ltob) نر.م. شوده توب، ساده ګي، کم عقلتوب، ساده والی.
**بې عقله** (beʂáqla) ص. نب. ناپوهه، شوده.
**بې علاقې** (beʂalā́qe) ص. نب. بې مينې، بې ذوقه، بې محبته، بې الفته.
**بې علمه** (beʂilmā́) ص. نب. ناپوهه، بېسواده.
**بې عيبه** (beʂaybā́) ص. نب. ۱) بې نقصه، بې زيانه؛ ۲) بې داغه، بې توره، بې تومته.
**بېغ** (beğ̌) په غوسه، په قهر.
**بې غاښو** (beğ̌ā́ṣo) ص. نب. کړشپ، شوپ، ښپ.
**بې غرضانه** (beğ̌arazā́na) ق. بېطرفانه، بې مقصده، بې تمې، بې توقع.
**بې غرضه** (beğ̌aráza) ص. نب. بې مقصده، بې مطلبه، بې لوثه، د خدای لپاره.
**بې غږه** (beğ̌aẓā́) ص. نب. ۱) صامت، چوپ، بې اوازه؛ ۲) بې اجازې، بې خبره.
**بېغمه** (beğ̌áma) ص. نب. ۱) چې غم نه لري، بې پروا؛ ۲) اسوده، ارام، بې اندېښنې.
**بې غوره** (beğ̌áwra) ص. نب. بې فکره، بې پروا، بې توجه، بې پوښتنې.
**بې غوږو** (بeg ﻭﺯﻭ) ص.نب ۱) بوچې، غنجې، منجې؛ ۲) کم عقل؛ ۳) کوڼ.
**بې غيرته** (beğ̌ayráta) ص. نب. بې ننګه، چې غيرت نه لري، دووس، بې پته.
**بې فايدې** (befāydé) ص. نب. عبث، بې ګټې، بې نفعې، فضول.
**بې فکره** (befikrā́) ص. نب. ۱) بې سوچه، بې سنجشه، بې حافظې؛ ۲) بې پروا.

بې فيضه (befayzá) ص. نب. بې گټې، عبث، فضول، بې حاصله، بې ثمره.

بې قاعدې (beqāʕidé) ص نب. ۱) بې طريقې، بې لارې، بې ترتيبه؛ ۲) بې قانونه، بې بنسټه؛ ۳) زيات، ډېر، بېخې ډېر.

بېقدره (beqádra) ص. نب. ۱) بې عزته، سپک؛ ۲) بې اهميته، بې ارزښته، په وره سترگه.

بې قراره (beqarā́ra) ص. نب. ناکراره، نارامه، سرگردانه، لالهانده، په غم اخته.

بې قصوره (bequsūrá) ص. نب. بې خطا، بې گناه، بې سهوې، بې اشتباه.

بې قوته (beqūwáta) ص. نب. کمزوری، ناتوانه، بې طاقته، کم قوته، ضعيف.

بې قولي (beqáwli) ښځ. م. بې لوزې، بې اعتبارې، بې وعده گي، بې ژبې.

بې قياسه (beqiyāsá) ص. نب. بې اندازې، ډېر زيات، بې حسابه، زيات.

بې قيده (beqáyda) ص. نب. هغه څه چې شرط او قيد په کې نه وي.

بې قيمته (beqimáta) ص. نب. ۱) وړيا، مفت، بې بيې؛ ۲) بې بها، ډېر قيمتي.

بيک (biyák) نر. م. (ج. بيکونه) ۱) د کښتۍ جپه، د کشتۍ ځپه؛ ۲) د کبانو د نيولو يو ډول اله

بېکاره (bekā́ra) ص. نب. ۱) ليه، بې روزگاره، روزگاره؛ ۲) لټ، تنبل، سست.

بيکانه (bikāṇá) ښځ. م. (ج. بيکانې) بوکانه، يو ډول ونه ده.

بې کچه (bekáča) ص. نب. بې مېچه، بې اندازې.

بې کډې (bekáḍe) ص. نب. ۱) بې کوره، بې سامانه؛ ۲) بې ښځې، بې ماندينې مجرد.

بېکسه (bekása) ص. نب. بې خپلوانو، بو زرى.

بې کسبه (bekásba) ص. نب. بې هنره، بې فنه.

بې کماله (bekamālá) ص. نب. بې هنره، بې کسبه.

بې کوره (bekorá) ص. نب ۱) بې ميني، بې خونې ۲) مجازاً سترې ستومانه او نارو غه.

بې کورې (bekóri) ښځ. م. کور نه لرل توب، مېنه نه لرل، بې خانگې.

بې کونگه (bekūngá) ص. نب. کمزورى، ناتوانه.

بېکې (bekáy) ښځ. م. لويه چاړه، سېلاوه.

بې کينې (bekiné) ص. نب. چې حسد نه لري.

بېگا (begā́) ق. وگا، تېره شپه، نن شپه.

بېگار (begā́r) نر. م. جبري کار، د زور کار، شاقه کار، بې مزده کار، بې اجورې کار.

بېگاړه (begāṛá) ښځ. م. وران، ويجاړ.

بېگانگي (begānági) ښځ. م. ۱) پردي توب؛ ۲) نابلدي، نا آشنايي، نه پېژندگلوي.

بېگانه (begāná) ص. نب. پردي، غير، اجنبي.

بېگانی (begā́nay) ص. نر. م. د تېرې شپې، د براېې شپې، دوو گنې شپې.

بې گټې (begáṭe) ص. نب. بې فايدې، بې نفعې، بې حاصله، بې وټې، بې سوده.

بيگر (bigár) نر. م. غرنى چرگ، زرين چرگ.

بېگر (begár) نر. م. يو ډول چاغ مرغه دی.

بې گرزه (begarzá) ص. نب. بې گرده، بې دورې.

بېگړا (begṛā́) ص. نب. لټ، تنبل، ناراسته.

بېگمانه (begumā́na) ص. نب. ۱) بې شکه؛ ۲) ناخبره، نابېره، ناڅاپه.

بېگمي (bégmi) ښځ. م. يو ډول ورېجې.

بيگه (bigá) ښځ. م. (ج. بيگې) د جريب او کنال په څېر د ځمکې د اندازه کولو مقياس.

بې گناه (begunā́) ص. نب. پاک، بې جرمه، د گناه کار ضد، هغه څوک چې گناه نه لري.

**بیګي** (bigi) ښځ.م. بیګی، ماتکه، د قطعو یوه پانه (پټه) ده.

**بېل** (bél) ص. نر.م. ۱) جلا، جدا، ځانګړی، ګوښی؛ ۲) نر.م. یوم، کره، تک بېل؛ ۳) د ګنو د ګانو اوږد لرګی (تیر) چې غوایي یې ګرځوي.

**بېلابېل** (belābél) ص. نر. بېل، بېل، ګوښی ګوښې، جلا جلا.

**بې لارې** (belā́re) ص.نب. ۱) لارورکی، منحرف؛ ۲) بدعمله؛ ۳) بې رواجه، بې دستوره

**بې لارېتوب** (belāretób) نر.م. ۱) بې لارې؛ ۲) بې رواجي، بې دستوري.

**بې لاسو** (belāsó) ص. نب. ۱) شوټ؛ ۲) هغه چا چې لاسونه نه وي؛ ۳) لټ، تنبل.

**بیلاندي** (belā́ndi) ښځ.ج. د کاریز هغه اوبه چې کله حوض ډک شي نو په یوه بله بیاله کې اړوي

**بیلانس** (bilā́ns) نر.م. ۱) تله، انډول، موازنه؛ ۲) بقایا، باقي، پاتې، د حساب پاتې.

**بېلاو** (belā́w) نر.م. بېلو، اسونی، باټ، برجي، د چړې، چاکو او نورو د تېره کولو آله یا ډبره.

**بېلتون** (beltū́n) نر.م. جدایي، جلاوالی، هجران، فراق.

**بېلتونپال** (beltūnpā́l) نر.م. بېلتون خوښوونکی، جدایي غوښتونکی.

**بېلتون ځپلی** (beltūnǰapálay) ص. نر.م. بېلتون زموللی.

**بېلچه** (belčá) ښځ.م. چاري، کوچنۍ چاري.

**بې لحاظه** (belihāzá) ص.نب، بدمخی، بې پاسه سپک، بې لحاظه.

**بیلرغو** (bilargū́) ص. نب. کوځه ډب، خوشکی، لوچک، ایله، چټې ګرځېدونکی.

**بېلښت** (belə́st) نرم. بېلتون، جلاوالی.

**بې لفظه** (belā́fza) ص. نب. بې ژبې، بې ژمنې، بې وعدې، بې قوله، بې لوزه.

**بې لفظي** (belā́fzi) ښځ.م. (ج. بې لفظې) بې ژبیتوب، بې ژمنیتوب، وعده خلافي.

**بېلک** (belák) نر.م. ۱) د زوم له خوا خپلې نامزدې ته سوغات لېږل؛ ۲) د غیشي څوکه.

**بېلګاو** (belgā́w) نر.م. خرڅ، څوری، توښه، د لارې مصرف.

**بېلګونه** (belgūná) ښځ.م. دانه، یو ډول مضره او خطرناکه دانه ده.

**بېلګه** (belgá) ښځ.م (ج. بېلګې) ۱) نښه، نښانه، پته؛ ۲) درک ایستل، څرک ایستنه.

**بېلګه يي** (belgáyi) ښځ.م. نمونه يي.

**بېلل** (belə́l) مص. مت. ۱) وګ. بایلل؛ ۲) د توپک په نښه برابرول، نښه نیول.

**بېللی** (belálay) ص. نر.م. چمتو، اماده، تیار، منتظر، تیارسی.

**بېلمائځه** (belmājá) ص.نب. ۱) بېلمانځ، بېلمازه؛ ۲) پر هغه ځای یا تیکه چې لمونځ روا نه وي.

**بېلمانځي** (belmā́nǰi) ښځ.م. (ج. بېلمانځې) ۱) بېلمازی، لمونځ نه کونه؛ ۲) جامې، حیض.

**بې لمه** (beláma) ص. نب. ۱) هغه ځاروي چې لم نه لري؛ ۲) بې لکی حیوانات.

**بېلنګی** (belangáy) ص. ښځ.م. هغه ځناوره چې خپل بچی ځان ته نه پرېږدي.

**بېلنه** (belána) ښځ.م. بېلتون، جدایي، جلاتوب، لرې والی، فراق، ګوښې توب.

**بېلواله** (belwālá) ښځ.م. بېلتون پالنه، بېلتونواله، جدایي غوښتنه، تجزیه طلبي.

**بې لوتې** (beláwte) ښځ.ج. اوتې بوتې، الوتې، ګډې وډې، کاواکې، اپلتې، چټیات.

**بیلودنه** (baylodána) بښځ.م. بایلنه، بایلات، بایلوونه، خرڅونه.

**بې لوظي** (beláwzi) بښځ.م. (ج. بې لوظی) بې ژبي، بې قولي.

**بېلول** (belawál) مص. مت. ۱) جلاکول، گوښې کول، جدا کول، پرې کول، شکول.

**بېله** (belá) بښځ.م. ۱) ترنی، ترناو، ناوه، هغه لویه ناوه چې په نهر د پاسه د اوبو د تېرولو لپاره ایښودل شوې وي؛ ۲) ناله، لـه سیند څخه بېله شوې بیاله؛ ۳) تاپو، وچکی؛ ٤) هغه ونه چې منځ یې تش وي.

**بې له** (belá) ق. پرته، بغیر، بدون.

**بېلهمه** (belháma) ق. ناڅاپه، نابېره، ناگومانه.

**بېلی** (beláy) نر.م. توپیر، بېلتون، جلاوالی.

**بېلېدل** (beledál) مص. ل. جلاکېدل، گوښې کېدل، ځانته کېدل، یوازې کېدل.

**بیم** (bim) نر.م. ۱) ډار، ویره، وهم؛ ۲) دلوخې بېخ؛ ۲) مورلی، د مارنیوونکو یو ډول شپېلۍ.

**بیمار** (bimā́r) ص. نـر.م. (ج. بیماران) ناروغ، ناساز، رنځور، ناجوړ، ناروغه..

**بیماري** (bimā́ri) ناجوړي، ناروغي، رنځوري.

**بې مالگې** (bemālgé) ص. نب. ۱) بـلمنگې، بې خونده؛ ۲) بې نوره؛ ۳) بې مینې.

**بې ماله** (bemā́la) ص. نب. بې شتو، خوار.

**بیمانتوب** (bimāntób) نر.م. ناځواني، نامردي، بې ایماني، بې همتي، بې زړه توب.

**بیمانه** (bimā́na) ص. نب. نامرده، بې همته.

**بې متره** (bemátra) ص.نب. بې سیکه، کمزوری، ضعیف، ناتوانه، بې قوته.

**بې مثاله** (bemisā́la) ص. نب. ممتاز، غوره، بې جوړې، بې مثله، بې انډوله.

**بې مجاله** (bemajā́la) ص. نب. ۱) بې وخته، بې فرصته؛ ۲) بې مداره، بې واره، بې حاله.

**بې مختوب** (bemaxtób) نـر.م. ۱) بې لحاظي، بې پاستوب، بې پاسي؛ ۲) بې شرمي.

**بې مخـه** (bemáxa) ص. نـب. ۱) بې لحاظه، بې پاسه؛ ۲) بې شـرمه، بې حیا.

**بې مروته** (bemarwáta) ص. نب. بې مهراني، ناځوانه، ناځوانمرده.

**بې مزې** (bemáze) ص.نب. بې خونده، بد خونده، هغه شی چې خوند و نه لري.

**بې مصرفه** (bemasráfa) ص.نب ۱) کم مصرفه، کم خرڅه؛ ۲) وړیا، خوشې.

**بې معنی** (bemaʂnā́) ص. نب. ۱) بې مـانا؛ ۲) خوشې، چټې، بې گټې، بې سوده.

**بې مغزه** (bemağzá) ص. نـب. بې فکـره، پوچ، بې مغزو، ساده، بې عقله، ناپوهه.

**بې مناسبه** (bemonāsibá) ص. نب. ۱) ناوړه، نامناسبه؛ ۲) بې ربطه.

**بې مـوجبه** (bemojibá) ص. نب. ۱) بې سببه، بې علتـه، بې دلیـله.

**بې مـورده** (bemoridá) ص. نب. بـې ځایـه، بې موقع، نامناسبه.

**بې موقع** (bemóqiʂ) ص. نب. بې ځـایـه، بې وخته، بې مورده، نامناسبه.

**بیمه** (bimá) ښځ.م. (ج. بیمې) ۱) ذمـه واري، د مال، روغتیا یا د ځان د نقصان ذمه واري.

**بې مهره** (bemihrá) ص.نب. بې محبته، بې مینې.

**بې میله** (bemáyla) ص. نـب. ۱) بې مینې، بې علاقې، بې ذوقه، بې رغبته؛ ۲) بې اشتها.

**بې مینې** (beminé) ص.نب. بې محبته، بې ذوقه، بې علاقې، بې رغبته، بې دوستۍ.

**بینا** (biná) ص.نب ۱) لیدونکی؛ ۲) پوه، هوښیار، عاقل، ځیرک.

**بې ناغې** (benáǧe) ص. نب. بې جریمې.

**بین المللي** (baynūlmilálī) ص. نب. نړی وال، جهاني، د نړۍ، انټرنیشنل. عمومي.

**بې نامه** (benā́ma) ص. نب. بې نومه، بې نښانه.

**بې ناموسه** (benāmūsá) ص. نر.م. بې ننګه، بې پته، بې ابرو، بې عزته.

**بینايي** (binā́yi) ښځ.م. (ج. بینايۍ) لیدنه، دید، نظر، د لیدلو حس.

**بین باجه** (binbā́ja) ښځ.م. ۱) ساز، باجه خانه؛ ۲) د خولې ارمونیه، هارمونیکا.

**بې نتیجې** (benatijé) ص. نب. بې حاصل، تش، بې مانا، بې ځایه، عبث.

**بینت** (baynt) نر.م (ج. بینتونه) له بانس څخه جوړه شوې د لاس امسا.

**بیند** (bayánd) ص. نب. جاري، روان، بهاند.

**بې نزاکته** (benizākáta) ص. نب. بې ادبه، بې ډبه، بې شرمه.

**بینش** (binš) نر.م. شاتیر، پښتول، ویشه، بش.

**بې نصیبه** (benasibá) ص. نب. بې طالع، بد قسمته، بې برخې، بې بخته.

**بې نظمه** (benázma) ص. نب. شواړ، ګډوډ، بې ترتیبه، خواره واره، تیت پرک، نامنظم.

**بې نظیره** (benazirá) ص. نب. بې ساري، بې جوړې، بې مثله، بې ماننده، بې همتا.

**بینګ** (bing) نر.م. (ج. بینګونه) د لوخې ویلی، د لوخې بیخ، د ډیلې ویخ.

**بې نمکه** (benamáka) ص.نب. و ګ. بې مالګې.

**بې ننګه** (benangá) ص. نب. بې غیرته، دووس، بې ایمانه، پست، کم همته.

**بېنوا** (benawā́) ص. نر. ښځ.م ۱) بې وزله، غریب؛ ۲) نر.م. یو ډول غرنی ګیاه ده چې شین ګل کوي ۳) عبدالرؤف بېنوا د پښتو ژبې وتلی لیکوال او شاعر چې د پښتو ادب له پنځو ستورو څخه یو دی.

**بې نومه** (benūmá) ص. نب. نوم ورکی، ګمنام.

**بینه** (bayná) ص.نب. ښکاره، څرګنده، جوت، رڼ.

**بې نهایته** (benihāyáta) ص. نب. بېخي ډېر، له شمار او اندازې وتلی، خورا زیات.

**بې نیازه** (benyā́za) ص. نب. بې احتیاجه، ناړ.

**بیني چوی** (biničóy) نر.م. سپېرخواکی، پېزوانی، تیرکښن، هغه کوچنی لرګی چې د یوې په غشي کې یې بند وي او په سر باندې (الۍ) کې یې اچول کېږي.

**بې واده** (bewādá) ص. نب. بې ښځې، بې مېړه، مجرد، مجرده، چا چې واده نه وي کړی.

**بې واره** (bewārá) ق. ۱) ناڅاپه، نابېره، ناخبره؛ ۲) بې نوبته، وارخطا.

**بې واسطې** (bewāsté) ص. نب. ۱) مستقیماً، مخامخ؛ ۲) بې وسیلې، بې ذریعې.

**بې واک** (bewā́k) ص.نر.م. بې اختیاره، بې وسه.

**بې واکي** (bewā́ki) ښځ.م. بې اختیاري، کمزوري، کم قوتي.

**بې وټه** (bewáṭa) ص .نب. ۱) نږه، سوچه، خالص، صاف؛ ۲) بې عیبه، بې غشه.

**بیوټیک** (byótik) ص. نر.م. د مشخص ژوند درلودونکی.

**بې وجدانه** (bewijdā́na) ص. نب. بې ضمیره، بې شرفه، بې پته.

**بې وخته** (bewáxta) ق. بې موقع، پخوا له وخته یا وروسته له وخته، ناوخته، بې ځایه.

بیور (byűr) نر.م. ۱) بیان، ذکر؛ ۲) مجلس، خبري.
بېوره (bewára) ص. نب. ۱) شرګند، ښکاره، جوت؛ ۲) ښځ.م. ظلم، تېري.
بېوړه (bewáṛa) ص. نب. نامناسب، ناموزونه، بې جوړې، ناوړه.
بېوزله (bewázla) ص. نب. غریب، بې وسه.
بې وزني (bewázni) ښځ.م. سپکوالی، د وزن کموالی، وزن با یللنه، وزن نه لرنه.
بیوسفیر (byosfér) نر.م. د ژوبو د اوسېدو ساحې لکه لیتوسفیر، هایدروسفیر او اتموسفیر.
بې وسلې (bewásle) ص. نب. بې اسلحې.
بې وسه (bewása) ص. نب. ناتوانه، بې قدرته، بېچاره، غریب.
بې وسیلې (bewasilé) ص. نب. بې واسطې، بې ذریعې، مستقیم، د واسطې ضد.
بې وطنه (bewatána) ص. نب. پردیس، مسافر.
بې وفا (bewafá) ص. نب. بې قوله، بې پروا.
بې وفايي (bewafáyi) ښځ.م. (ج. بې وفایۍ) وعده او ژبه ماتوونکی.
بې وقوف (bewūqúf) ص. نر.م. ۱) کم عقله، ناپوهه؛ ۲) بې ډبه، بې ادبه، بې تمیزه.
بیوګراف (byográf) نر.م. هغه شوک چې د چا د ژوند حالات لیکي یا یې تشریح کوي.
بیوګرافي (biográfi) ښځ.م. سوانح، د یو چا د ژوند د حالاتو او سوانحو کتاب.
بیول[1] (biwál) مص. مت. ۱) بوتلل، بوول (د انسان حیوان، موټر)؛ ۲) لښه ایستل.

بیول[2] (bayáwal) مص. مت. و ګ. بهول.
بیولوجي (byolóji) نر.م. بیالوجي، بیولوژي، بیالوژي، د ژوبو پوهنه، علم الحیات.
بیوله (bewála) ص. نب. بومخی، بوژبی، صادق.
بیوو (biwú) نر.م. تېرا، بېزاره کېدل.
بیه[1] (bayá) ښځ.م. قیمت، نرخ، ارزښت، بیعه.
بیه[2] (biyá) ښځ.م. ډډه، ونه، قد، قد و قامت.
بیه[3] (byá) ق. بل ځل. بل کرت، دوباره، پس.
بیهنډ (bihánd) نر.م. بیهاڼ، بهاڼ، بیاڼ، بیوڼ.
بیهو (behű) ص. نب ۱) ترنده، ترهدلی، وېرېدلی؛ ۲) غرنی، دښتي، وحشي.
بېهوده (behūdá) ص. نب. بې فایدې، بې ګټې، چټي، بې مانا، عبث.
بېهوښه (behóṣa) ص. نب. ۱) بېهوښه، بې حسه، بې سده؛ ۲) له عقل څخه خلاص.
بېهووالی (behūwálay) نر.م. ۱) صحرایي توب؛ ۲) وېره، ترهدنه، ترهېدنه.
بې هیبته (behaybáta) ص. نب. ۱) بې وېرې، بې ترسه، بې داره؛ ۲) بې لوېې، بې پرتمه.
بې هیلې (behilé) ص. نب. ۱) نا امیده، بې اسرې، بې ارزو، مایوسه؛ ۲) بېکسه.
بې یېبرې (beyébre) بې ثمره، شنډ، بې حاصله.
بیېدل (bayedál) مص. ل. و ګ. بهېدل.
بیېدنه (bayedána) ښځ.م. بیېدنګ، بهېدنه، جاري کېدنه، روانېدنه.
بیېده (bayedá) نر.ج. بهېدنه، جاري کېدنه.
بییر (báyir) نر.م. (ج. بییرونه) و ګ. بهیر.

# پ

**پ** (pə) ښځ.م. (ج. پې ګانې) د پښتو الفبې شلورم توری دی.

**پا** (pā) ښځ.م. ۱) ملهم، پټۍ؛ ۲) پښه؛ د ختیزې کلاسیکې موسیقۍ اووګونو سرونو پنځم سر.

**پابند** (pābánd) ص. نر.م. ۱) پای بند، ګرفتار؛ ۲) تابع، مجبور؛ ۳) ټینګ، ولاړ، مقید.

**پابندي** (pābándi) ښځ.م. ۱) ګرفتاري، مجبوري؛ ۳) بندیز.

**پاپا** (pāpā́) نر.م. بابا، کوچنیان یې پلار ته وایي.

**پاپټی** (pāpátay) ص. نر.م. (ج. پاپټي) مندری، ټیټ قدی، لړشتینک، لړشتکی، ټیټکی.

**پاپټکه** (pāpáṭka) ښځ.م. د غرني لاله ښځ.

**پاپړکی** (pāpáṛkay) نر.م. ۱) وړوکی، کوچنی؛ ۳) نسری، تنکی؛ ۴) توتنی، وړې وړې ټوټې.

**پاپړ** (pāpáṛ) نر.م. ۱) پاسټی، چپاتی، یو ډول نری ډوډۍ ده؛ ۲) ص. نر.م. ډېر نری، ډېر تنکی.

**پاپړکی** (pāpáṛkay) نر.م. (ج. پاپړکي) پتری.

**پاپړي** (pā́pṛi) ښځ.م. (ج. پاپړۍ) ۱) مالیده، پنجیری؛ ۲) د ګوړې پټ نه جوړ شوې کرېدونکی خواږه؛ ۳) ژاوله.

**پاپکه** (pāpáka) ښځ.م. یو ډول وابښه دی چې له ښځ نه یې ژاوله لاس ته راځي.

**پاپلۍ** (pāpláy) ښځ.م. پاپۍ، پلۍ، د کوچنیانو د لومړی وار په پښو بوونه.

**پاپلین** (pā́plin) نر.م. پیلین، یو ډول پوست او نرم نخي ټوکر.

**پاپو** (pāpó) ښځ.م. بابی، کاکی، مشرې ښځې ته د احترام په ډول ویل کېږي.

**پاپوتکی** (pāpútkay) ص. نر.م. (ج. پاپوتکي) ډېر چیت، ډېر ټیټ، مندره کی، مندری.

**پاپوتکر** (pāpotkár) ص. نر.م. صادق، سپېڅن، رښتینی، راستکار.

**پاپوکه** (pāpoká) ښځ.م. د زنګیو (زیري) د بوټي ولې او ښخ (جرړه).

**پاپۍ** (pāpáy) ښځ.م. ج. پاپوکې. د کوچنیانو په ژبه پښې ته وایي.

**پاپي** (pā́pi) ص. نب. ګناهکار، بدکاره، بې لارې، بدعمله، بدچلند، کوچنی سپی.

**پاپیروس** (pāpirū́s) نر.م. د پخوانیو کاغذونو نوم چې مصریانو به لیکنې وربان‌دې کولې.

**پات** (pā́t) نر.م. پټي، پیاټي، پیټي، پاټي، دال.

**پاتا** (pā́tā) ښځ.م. ۱) فاتحه، په مړي پسې دعا؛ ۲) نر.م. مشر، د سر سړی، پلار؛ ۲) سرکښ.

**پاتان** (pātā́n) نر.م. اندرپایه، پارچنګ، درم پایه، درییه، پړ، زینه، ړکینه لاره.

**پاټان** (pāṭā́n) نر.م. لار، لیار، پټن، لاره.

**پاتاو** (pātā́w) نر.م. هر لوی نهر یا لویه ویاله.

**پاتخه** (pātáxa) ښځ.م. د اندرپایې پاتکی، د لارې اړکی، د زینې یا د درپایې اړکی.

**پاتره** (pātrá) (ج. پاترې) پتری، پتوکی، پټ، د زخم د پاسه نرۍ پرده.

**پاتری** (pā́tray) نر.م. ۱) ګل، ښکر، د څمکې دمخ سختېدل، کریږمن کېدل؛ ۲) خاوری، د خاورې کنډول؛ ۳) د تیږې په اسانه ژرېدل؛ ۲) د شونډو پتری نیول (د تندې، غم یا بیماری له امله).

**پاتري** (pā́tri) نر.م. پاتلی (څښتن، بادار)، په اریایي تولنه کې یې پلار ته پاتري وایي چې مانا یې (غذا ورکوونکی) کېږي.

**پاتمړې** (pātmá̱ṛe) ص. ښځ.م. ج. پاتوړې، پاته مړنه، د مړي نه پاتې شوی مال.

**پاتنده** (pātánda) ق. پاینده، پاتې کېدونکی، تل ترتله، باقي، دایمي.

**پاتو** (pātó) ښځ.م. ۱) یو ډول سور رنګه چینجی دی؛ ۲) یو ډول مچ؛ ۳) یو ډول مرغی ده چې د شپې اوازونه کوي؛ ٤) ق. پاتې. تل ترتله.

**پاتوپنځه** (pātopencá) ښځ.م. ۱) شرمښکی، څرمښکی؛ ۲) ږنده مېږی، مارخوری.

**پاتوځنه** (pātocána) ښځ.م. سنبل، د دارویو بوټی.

**پاته** (pātá) ص. نب ۱) باقي، پاتې؛ ۲) پاته‌شونی، بقایا؛ ۳) ناکام؛ ٤) ایسار، معطل.

**پاته شوی** (pātaṡáway) مف. نر.م. (ج. پاته شوي) ۱) پس مانده؛ ۲) تهال یا ایسار شوی؛ ۳) ناکام شوی.

**پاته مړنه** (pātamṛána) ښځ.م. (ج. پاته مړنې) میرات، میراث، له مړي نه پاتې شوی مال.

**پاته والی** (pātawā́lay) نر.م. (ج. پاته والي) بقا، همېشوالی، تلوالی.

**پاته وړی** (pātawáṛay) ص. نر.م. (ج. پاته وړي) میراث‌خور، وارث، میرات‌خور.

**پاتی** (pā́tay) نر.م. پیټی، پټی، دال.

**پاتېدل** (pātedál) مص. ل. ۱) پاتې کېدل، تهالېدل، ایسارېدل؛ ۲) ناکامېدل.

**پاتې شونې** (pāteṡū́ne) مف. ښځ.م. جوټه، لیښبوینکی، سرویغی، پس خورده، باقیمانده.

**پاتې شونی** (pāteṡū́nay) مف. نر.م. ۱) دوام، همېشوالی؛ ۲) کنوبی، سرویغی، لیښبوین.

**پاتیله** (pātilá) ښځ.م. (ج. پاتیلې) دېګچې، دیګبر، پتیله، لوی خولی الومنیمي دېګی.

**پاټ** (pā́ṭ) نر.م. (ج. پاټونه) ۱) لوی مستطیل ډوله پټی؛ ۲) بړید، بند، بندی، ډېیره، د پټي چار چاپېره پوله؛ ۳) پوټکی، څرمن، وژن، تره (یوازې د انسان لپاره راځي)؛ ٤) برخه، ونډه؛ ۵) پاټ، د ډکو او تشو میټیازو لوښی.

**پاټخ** (pāṭáx) نر. م. د بوټانو د پاکولو برس.

**پاټک** (pāṭák) نر. م. ۱) پیره، کریکی، له سیخانو او لرګیو جوړه چلیه یا دروازه؛ ۲) د مالونو د محصول ورکولو ځای؛ ۳) بندیز، خنډ، په لارو کې د درولو او بندولو لرګی یا زنځیر.

**پاټک والا** (pāṭakwālá) نر. م. د پاټک څوکیدار، د پاټک ساتونکی.

**پاټکی** (pā́ṭkay) نر. م. ۱) اړکی، د پوړیو پټه؛ ۲) یوه برخه، یوه ټوټه؛ ۳) د شعر یوه ټوټه؛ ۴) د ښار یوه برخه؛ ۵) کوډې، جادو؛ ۶) په ونه کې دختلو پایتک (ژور ځای)

**پاټلی** (pāṭláy) ښځ. م. ج. پټلی، د اورګاډي د اوسپنې کرښه یا خط.

**پاټی** (pā́ṭay) نر. م. ۱) د ډانډس هغه ځای چې نداف یې په لاس کې نیسي؛ ۲) دلینډې، پټۍ، د غولکې کاسی؛ ۳) جلب، ولونی.

**پاجامه** (pājāmá) ښځ. م. (ج. پاجامې) برزو، پرتوګ، پرتوګ، پایجامه، د خوب جامې.

**پاجوله** (pājowlá) ښځ. م. پاژوله، غنې مسی، لوبې اوارتې جرابې؛ ۲) پلستري، د وژغنو جرابې، د وژغنو جرابې.

**پاجي** (pā́ji) ص. نر. م. (ج. پاجیان) ۱) رذیل، ذلیل، خوار؛ ۲) غلام، نوکر، مزدور.

**پاجیتوب** (pājitób) نر. م. رذیلتوب، پستي.

**پاچا** (pā́čā) نر. م (ج. پاچایان) ۱) واکمن، پادشاه، تولواک؛ ۲) سید، د بي بي فاطمې (رض) د اولادې لقب.

**پاچا خره** (pāčāxrá) ښځ. م. یو ډول خر رنګه خزنده.

**پاچا وزیرک** (pāčāwazirák) نر. م. یو ډول لوبه ده چې په قطعو او په سپښتو کې کېږي.

**پاچاهي** (pāčāhí) ښځ. م. ۱) پاچايي، بادشاهي؛ ۲) بې فکري، بې غمي، عیش، خوشحالي.

**پاچاهي لار** (pāčāhilā́r) ښځ. م. ۱) لویه لاره، شاهراه؛ ۲) د پادشاهي قاعده یا دستور.

**پاچړ** (pāčár̥) ص. نر. م. خوسا، سخا، ګنده، بوین، خیرن، ناولی، چټل.

**پاچکني** (pāčknáni) نر. م. یو ډول بوټی دی چې سپین ګلان لري، چکنۍ یا سرېښ ترې جوړېږي.

**پاچه خزک** (pāčaxázak) نر. م. ۱) د چرګانو یو ډول چې لنډې پښې لري؛ ۲) موتووی، یو ډول اور لوبه.

**پاڅون** (pācún) نر. م. انقلابي حرکت، انقلابي پورته کېدنه، سرغړاوی، بغاوت.

**پاڅونه** (pācawána) مص. مت. ۱) پورته کونه، جګونه؛ ۲) له خوبه راویښونه؛ ۳) الوځونه، ورڅونه؛ ۴) وینه، لوستنه؛ ۵) په دم د جادو او پېري لرې کونه؛ ۶) د کلي یا ملک نه شړنه؛

**پاخانه** (pāxā́na) ښځ. م. (ج. پاخنې) ټټی، خاک انداز، مکان، پای خانه؛ بیت الخلاء.

**پاخه** (pāxá) ص. نر. م. (م. پوخ) ۱) پوخ شوی؛ ۲) تجربه کار، رسېدلی؛ ۳) کلک.

**پادشاه** (pādšā́h) نر. م. و ګ. پاچا.

**پادري** (pā́dri) نر. م. (ج. پادریان) د عیسویانو مبلغ، د مسیحیانو مذهبي مشر.

**پادو** (pādáw) ص. نر. م. و ګ. پاده وان.

**پاده** (pādá) ښځ. م. (ج. پادې) ګورم، ګواره، ډنې، ګاهر، ګویر، د خرو او غوایو ګله.

**پاده وان** (pādawā́n) ص. نر. م. ګوروان، هغه څوک چې د خرو او غوایانو ګله پیایي.

**پادیښ** (pā́diṣ) نر. م. (ج. پادیښونه) ربړ، کړاو، ظلم، تېری، سزا.

**پاډه** (pāḍá) ښځ.م. (ج. پاډې) ۱) تسمه؛ ۲) لښته، ګېنده، پاړه، خام کوک؛ ۳) د غوښې نرۍ ټوټه؛ ۴) د ملا لاندېنۍ او ځېږه برخه، برزه، ۵) لوبټ.

**پاډه کول** (pāḍakáwal) مص. مت. د غوښې نه نرۍ اوږده برخه پرې کول، غوښه ترادې ترادې یا ترانګې ترانګې کول.

**پار** (pār) نر.م. (ج. پارونه) ۱) شومه، برخه، حصه، د ورځې او شپې د اتو برخو نه یوه برخه؛ ۲) ق. وار وار، ځل ځل؛ ۳) کلي، چابي؛ ۴) نورسي، مېرسینګ؛ ۵) جګړنه، لمسونه؛ ۲) لحاظ، خاطر؛ ۳) اختیار، واک؛ ۴) اقتدار، زور.

**پارازیټ** (pārāzít) نر.م. ۱) د هغو واړه ژوندي موجودات دي چې د بل ژوندي موجود په دننه او د باندې کې اوسېږي؛ ۲) مفت خور، طفیلي؛ ۳) مضر عنصر، استثمارګر.

**پاراف** (pārấf) نر.م. لنډ لاسلیک، د امضا کرښې.

**پارالل** (pārālíl) ص. نر.م. موازي، متوازي کرښې.

**پارټ** (pārṭ) نر.م (ج. پارټونه) خصه، برخه، رول، څپرکی، ټوک، ټوټه.

**پارچاو** (pārčấw) نر.م ۱) پارچاوه، پرچاو، درېدنه؛ ۲) ص. نر.م. معطل، ولاړ، کرېاپ، بندېدنه، بې کاره.

**پارچاوېدل** (pārčāwedə́l) مص. ل. ټالېدل، بندېدل، بې کاره کېدل، د کار درېدل.

**پارچل** (pārčə́l) نر.م. خچنه او ارزانه مېوه.

**پارچنګ** (pārčə́ng) نر.م. اندرپایه، د لرګي پېړۍ، زینه، پارسنګ.

**پارچنګی** (pārčə́ngay) نر.م. ووړکې اندرپایه، ووړکی پارسنګ، کوچنۍ پېړۍ.

**پارچه** (pārčá) ښځ.م (ج. پارچې) ۱) ټوټه، ټکړه؛ ۲) پانه، پڼه، پرنیې؛ ۳) اطلاعنامه.

**پارسا** (pārsā́) ص. نر.م. پرهېزګار، نېک، صالح، متقي، پاک لمنی.

**پارساتي** (pārsā́ti) نر.م. لحاظ لرونکی.

**پارسايي** (pārsā́yi) ښځ.م. پرهېزګاري، نېک عملي، تقوا.

**پارسل** (pārsə́l) نر.م. هغه تحفې او لیکونه چې د ډاک له لارې لېږل کېږي.

**پارسنګ** (pārsáng) نر.م ۱) پارچنګ، اندرپایه؛ ۲) پارسنګ، د تلې د دواړو پلو د برابرولو وزن.

**پارک** (pā́rk) نر.م. ۲) د تماشې لپاره جوړ شوی باغ؛ ۲) هغه ټاکلی ځای چې موټر، عرادې او ټانګونه په کې درېږي.

**پارکال** (pārkā́l) نر.م. ۱) وس، قدرت، طاقت؛ ۲) پرکال، پرکول، بې وسه، کهال.

**پارګین** (pā́rgin) نر.. ۱) د ګندګۍ ډنډ، تالاب؛ ۲) ډېران، د ښورې غونډۍ، د مېورې.

**پارلمان** (pārlamā́n) نر.م. په پارلماني جمهوري، مشروطه سلطنتي او په ډیکتاتوري رژیمونو کې د نمایندګانو مجلس ته وايي.

**پارو** (pārū́) نر.م. (ج. پاروګان) ۱) ښوری، یېم، راشپېل؛ ۲) هغه لرګی چې د اسانو او غویو د پښو نه د ورښو کانګې او سره پرې راټولوي؛ ۳) د کښتۍ او بېړۍ د لرګیو درې؛ ۴) سره، امبار، انبار، ګرد، د سرې ډېران.

**پاروکی** (pārūkáy) ښځ.م. ږمنځ، ږمونځ، ګمنځ، د وېښتانو د ږمونځولو آله.

**پارول** (pārawə́l) مص. مت. جګول، لمسول، ځېږول، جنګ او جګړې ته تیارول.

**پاره** (pārá) ښځ.م. (ج. پارې) سیماب، جیوه، ژیوه، مرکند، زیبق، آبک.

**پاریال** (pāryā́l) نر.م. پرده، پېلار، د مېوې په ګرد

کې ځنه پرده چې درې ورځو پسورې د نساوې د ناسعې لپاره ځړېږي .

**پارېدل** (pāredál) مص. ل. لمسېدل، ټـهرېدل، د چا په لمسه جنګ ته تیارېدل.

**پاري** (pári) نر.م. د یو ګل نوم دی.

**پاړ** (pāṛ) نر.م. (ج. پاړونه) ګوازه، خوازه، د ګلکار د درېدو لرګی؛ ۲) د لرګي یوه اوږده تخته؛ ۳) د بام ځنلو لرګی چې د پېښو پټکي او ړکي لري.

**پاړبنج** (pāṛbánj) نر.م. ۱) غوره څېړی، شاه بلوط، د یوې ونې نوم؛ ۲) اونی.

**پاړکی** (pāṛkay) نر.م ۱) قطعه، ټوټه، بیت، شعر؛ ۲) فال، بخت، طالع؛ ۳) پاټکی، د لرګینې زینې یوه.

**پاړکیوال** (pāṛkiwál) ص.نر.م. شاعر، پاړکی جوړوونکی، چندی، لاټول.

**پاړو** (pāṛú) نر.م. ۱) هغه آله چې منزرینې شپېلۍ ورباندې ګنډل کېږي؛ ۲) ص. نر.م. پاړوګر، هغه سړی چې د ماران اوده لري؛ ۳) بدشکله سړی؛ ٤) بدچلند هلک؛ ٥) چلباز.

**پاړوګر** (pāṛūgár) نر.م. (ج. پاړوګران) ۱) پاړو، پاړیګر؛ ۲) جادوګر، مارګیر.

**پاړه** (pāṛá) ښځ.م. (ج. پاړې) ۱) دم، اوده، وودهٔ؛ ۲) څری، د کرېښو ترمنځ څمکه د بېړوې نه پاټې کېدل؛ ۳) نیمګړی کار؛ ٤) د جامو د مینځلو تخته؛ ٥) لویه غلطي، زنا؛ ٦) خوای، راشېیل؛ ۷) فال؛ ۸) له تناره شخه د ودوی د راویستلو سیخ؛ ۹) الشپی؛ ۱۰) ضرب زباني.

**پاړی** (pāṛáy) ښځ.م ۱) د هوسۍ پروول؛ ۲) ترازه، تېنډره، چښنده، د هندواني او خټکوزې ترازه؛ ۳) د تیږو ډېرۍ.

**پازند** (pāzánd) نر.م. د زردشتي مذهبي کتاب (زند) شرحه.

**پازه** (pārzá) ښځ.م. (ج. پازې) ۱) اثر، اغېز؛ ۲) چستي؛ ۳) زړورتیا، جرأت؛ ٤) تندرنا؛ ٥) الحاظ، پاس؛ ٦) حیا، شرم؛ ۷) نصیحت.

**پازه وال** (pāzawā́l) ص.نر.م. ۱) فعال (مامور)، خدمتګار؛ ۲) معتمد؛ ۳) منشي، محرر.

**پاژوله** (pāžáola) ښځ.م. (ج. پاژولې) د وژغنو جرابې، د وژغنو مسی.

**پاړ** (pā́ẓ) نر.م. پرسوب، ډډون.

**پاړول** (pāẓawā́l) مص. مت. پرسول، ډډول.

**پاړوی** (pāẓáway) نر.م. (ج. پاړوي) غرنی پیاز، پیازګی، پیازک.

**پاړه** (pāẓá) ښځ.م. ددم او اودې (پاړو) اثر، د ګوډو اغېز او تاثیر.

**پاړېدل** (pāẓedál) مص. ل. وګ. پرسېدل.

**پاس** (pā́s) ق. ۱) پورته، لوړ، جګ، هسک، اوچت ۲) پر؛ ۳) نر.م. لحاظ، خاطر؛ ٤) پر دول ملهم دي چې پمنو ښاروېوته کارېږي؛ ٥) اجازه نامه، راه داري؛ ٦) ص. نر.م. بریالی؛ ۷) فارغ، خلاص؛ ۸) سپ. د فوټبال په لوبه کې د توپ بل غري ته رسونه.

**پاسپورټ** (pāspórṭ) نر.م. له خپل هېواد څخه بل هېواد ته د تګ اجازه نامه.

**پاست** (pā́st) نر.م. ۱) احسان، منت؛ ۲) تشکر، شکریه، مننه.

**پاستی** (pā́stay) نر.م. (ج. پاستي) ۱) ګهیټی، مکی، کوکری؛ ۲) د هوا، خرابۍ د مرۍ لاندې څړوندې اوږده برخه.

**پاسره** (pā́srá) ښځ.م. (ج. پاسرې) ۱) پونګه، زبرمه، سپما، پانګه؛ ۲) بوګری، بوګری،

هغه ځمکه چې مالک يې بزرگر ته د کر لپاره ورکړي؛ ۳) باعث، سبب، وجه.

**پاسره گر** (pāsragár) ص. نر.م. پاسره وال، زېرمه گر، بچت کوونکی، صرفه جو.

**پاسل** (pāsál) مص. مت. ۱) د چا سره نېکي او ښېگڼه کول؛ ۲) ناروغ مالش کول؛ ۳) لحاظ ساتل، خاطر کول؛ ٤) سپارل، حواله کول.

**پاسلودنه** (pāslodána) ښځ.م. ۱) پاسلونه، حواله کونه؛ ۲) احسان اړونه، ښېگڼه کول.

**پاسلون** (pāslún) ص. نر.م. پیره دار، څوکي دار، پېره کوونکی.

**پاسلېيل** (pāsleyál) مف. مت. په چا احسان یا نېکي زباتل، چا ته خپله نېکي یا احسان وریادول، څوک په ښېگڼه شرمول.

**پاسنه** (pāsána) ښځ.م. (ج. پاسنې) ۱) لحاظ، رعایت؛ ۲) تر احسان لاندې راتلنه؛ ۳) پر څارويو د مهربانۍ لاس کښول.

**پاسنی** (pāsánay) ص. نر.م. (ج. پاسني) ۱) لوړ، پورتنی، برنی؛ ۲) دجگې سيمې اوسېدونکی.

**پاسنۍ** (pāsanáy) ښځ.م. د کوچنیانو یو ډول ناروغي ده.

**پاسو** (pāsú) ص. نب. ۱) خاکسار، عاجز، غلی؛ ۲) پست، ټيټ، رذيل، لوچک.

**پاسوال** (pāswál) نر.م. ۱) ساتونکی، څوکېدار، محافظ؛ ۲) باچا؛ ۳) د احسان خاوند.

**پاسوان** (pāswán) ص. نر.م. ۱) ساتونکی، ساتندوی، څوکېدار؛ ۲) شپون، گډبه.

**پاسه** (pāsá) ښځ.م. ۱) سوچه سره، خالص زر؛ ۲) ص. نب. کره، روغ، اعتباري، رښتياني.

**پاشتک** (pāšták) نر.م. واسه، وسه، پاشتوک، پزی، چڼ، د کوټې دپاسه کوچني لرگي اچول.

**پاشل** (pāšál) مص. مت. تيتول، شيندل، دوړول، شنل، لوستل، خوروور غورځول.

**پاشنه** (pāšná) ښځ.م. لخک، هغه زياتي لرگي چې د دروازې د هرې پلې په آخر او سر کې پرېښودل کېږي.

**پاغونده** (pāğundá) ښځ.م. ۱) دنداف د وهل شوو مالوچو غونډاری؛ ۲) دواورې غونډاری.

**پاک** (pāk) ص. نر.م. ۱) صاف، سپېڅلی، سوتره؛ ۲) پرهېزگار، نېک؛ ٤) بې عيبه، بې نقصه.

**پاکټ** (pākáṭ) نر.م. (ج. پاکټونه) لفافه، بنداژ، هغه کاغدي خلته چې ليکونه په کې بندېږي.

**پاکړه** (pākṛá) ښځ.م. (ج. پاکړې) د اوښ کته.

**پاک زړی** (pākzáṛay) ص. نر.م. نېک زړی، پاک نيتی، سپين زړی، صاف، صادق.

**پاک لمنه** (pāklamána) ص. ښځ.م. پاکه ښځه، د ښو اخلاقو خاونده ښځه، با عفته.

**پاک نفس** (pāknáfs) ص. نر.م. پاک نفسه، پرهېزگاره، څوک چې په غلا، بډو، قاچاق او... اخته نه وي.

**پاک نويس** (pāknáwis) ص. نر.م. ۱) صفا ليکل شوی؛ ۲) ښه او پاک ليکونکی.

**پاک نويس کول** (pāknawiskawál) مص. مت. ستره ليکل، پاک ليکل، له چټلي پر ته ليکل.

**پاک نيتی** (pāknyátay) ص. نر.م. (ج. پاک نيتي) د ښې ارادې خاوند، د ښه نيت خاوند.

**پاکوالی** (pākwálay) نر.م. ۱) پاکي، ستره والی؛ ۲) چنتوب؛ ۳) دحساب تصفيه؛ ۵) دجنجال ختمېدنه؛ ٦) بزرگي؛ ۷) فرض غسل کول.

**پاکول** (pākawál) مص. مت. ۱) صفا کول، ستره کول دوړې او ناپاکي ترې لرې کول؛ ۲) چڼول، ښه او بد بېلول.

**پاکه** (pākā́) ص. ښځ.م. ۱) د پاک مؤنث؛ ۲) ښځ. م. سوروره خامتا، پلنه خامتا.

**پاکه پاکۍ** (pākapākā́y) ښځ.م. تېپوس، مردار خور مرغه.

**پاکي** (pā́ki) ښځ.م. ۱) د سر چاړه، سرخوني، پتری؛ ۲) صفايي، پاکيزه گي، سپېڅلتوب.

**پاکيزه** (pākizā́) ص. ښځ.م. و گ. پاک.

**پاگل** (pāgál) ص. نر.م. (ج. پاگلان) ۱) بې فکره، بې سده، لېوني؛ ۲) کم عقل، ساده، نادان.

**پاگلتوب** (pāgaltób) نر.م ۱) لېونتوب، پاگلتيا؛ ۲) کم عقلتوب، ساده توب.

**پاگل خونه** (pāgalxūnā́) ښځ. م. د لېونو د ساتلو او علاج ځای، دارالمجانين.

**پال** (pā̃l) نر.م (ج. پالونه) ۱) برخليک، تقدير، فال؛ ۲) پرهېز، ځان ساتل؛ ۳) د ييوې پاله سسپاړ؛ ٤) د سيند وړوکی خوړ؛ ٥) رو. پالونکی، قدر کوونکی، روزونکی، ميلمه پال، روغتيا پال.

**پالاکه** (pālākā́) ښځ.م. د مار څرښندی، د منګور کيله، د مار د تلو کرښه.

**پالاني** (pālā́ni) نر.م. يابو، ټټو، زوړ کچر.

**پالای** (pālā́y) نر.م. ۱) پلی، د (موټو، مئ، لوبيا او مشنګو) هغه برخه چې داني په کې پټې وي؛ ۲) کيلۍ، چابۍ، کونجي، نوسی.

**پال پی** (pālpáy) نر.م. و گ. پاپلی.

**پالتو** (pāltū́) ص. نب. زيات، فالتو، اضافي.

**پالش** (pā́liš) نر.م. (ج. پالشونه) ۱) دبوټونو او څپليو رنګول؛ ۲) ځلا، صيقل.

**پالشي** (pā́liši) ص.نر.م (ج. پالشيان) ۱) پاليشي، پالش او رنګ ورکوونکی؛ ۲) غوړه مال.

**پالک** (pālák) نر.م. ۱) زوی نيو، په زويتوب نيول شوی هلک؛ ۲) يو ډول سابه دي.

**پالکانه** (pālkānā́) ښځ.م. (ج. پالکانې) ديرڅه، درڅه، دريڅه، روشندان، کړکۍ، روزان.

**پالکوری** (pālkóray) نر.م. هغه کوټه چې د بزګری اسباب او سامان په کې پروت وي.

**پالکۍ** (pālkáy) ښځ.م. ۱) هغه ډولۍ چې کلالانو او بتېيارانو به شتمن خلک سواره په کې بيول؛ ۲) هغه کجاوه چې پرپيل اچول کېږي؛ ۳) ځپان، ډولی، هغه ډولۍ چې کلالانو او بتېيارانو به په کې ناوې په اوږو وړله؛ ٤) يو ډول سور رنګی چينجی دی.

**پالګر** (pālgár) ص.نر.م. پال کتونکی، نجومي، پال ليدونکی، فالبين.

**پالل** (pālál) مص. مت ۱) پالنه کول، تربيه ورکول، روزل؛ ۲) د چا حق ادا کول؛ ٤) غور کول.

**پالنځی** (pālánǰay) نر.م. پالنتون، مرستون، روزنځی، روزنتون، دارالايتام.

**پالندوی** (pālandóy) فا.نر.م. ۱) پالونکی، روزونکی، تربيه کوونکی؛ ۲) د پوهنتون هغه محصل چې څارندوی (سکاوټ) وي.

**پالنګ** (pālā́ng) نر.م. (ج. پالنګونه) ښکلی کټ يا چپرکټ، لوی کټ، چپرکټ.

**پالنه** (pālána) ښځ.م (ج. پالنې) ساتنه، روزنه، تربيه کونه، لويونه.

**پالوال** (pālwā́l) ص. فا.نر.م. ۱) پرهېزګار؛ ۲) وفادار.

**پالوان** (pālwā́n) ص. نر.م. ۱) پهلوان، د غېږې په چل پوه؛ ۲) غټ، لوی؛ ٤) بهادر، تکړه؛ ٥) د درانه سامان پورته کول کرين.

**پالوده** (pālūdá) ښځ.م. د يخي او مايع کړی شوې نشايستې مايچې چې شربت او واوره ورسره ګډ وي.

**پالوز** (pālóz) نر.م. هغه دری (سترنجی) یا غالی چې د ناستې لپاره استعمالیږي.

**پالوشپه** (pālošpá) ښځ.م. (ج. پالوشپې) شوقدر، د برات شپه، پنځلسی، د بلنډو شپه.

**پاله** (pālá) ښځ.م. (ج. پالې) سسپاره، سسپور، پال، د اوسپنې کرکی، کیږ، په یېوې کې د ځمکې د څیرلو لپاره اوسپنیزه آله؛ ۲) پرخه، شبنم.

**پاله پدري** (pālapádri) ق. ضرور، حتمي، خامخا، ارومرو.

**پالهنګ** (pālháng) نر.م. کولند، هغه لرګی چې د خوسکي، سخوندر یا کټي غاړې ته ددې لپاره وراچول کېږي چې له تیښتې څخه وساتل شي. او یا د مور پې ونه روي.

**پالی** (pālay) نر.م. ۱) غوړی، د ځمکې هغه برخه چې د یېوې او کولبې د دوو کیلو په منځ کې د اړولو نه پاتې شوې وي؛ ۲) پرهېزانه خوراک؛ ۳) د کوچنیانو لوبه ده؛ ٤) کوچنی چې نوی تګ زده کوي؛ ۵) پرهېز کوونکی.

**پالي** (pāli) ښځ.م. هغه ژبه ده چې دوه نیم زره کاله بخوا په هند کې ویل کېدله.

**پالې اچول** (pāleačawál) مص.ل. نیوکه، نیونه، د ماشومانو لوبه ده.

**پالېز** (pālez) نر.م. (ج. پالېزونه) د ختکو او هندوانو کرونده یا کرلې پټی (باغ).

**پالېزوان** (pālezwān) ص. نر.م. د پالېز ساتونکی او پالونکی.

**پالېسي** (pālési) ښځ.م (ج. پالیسی) ۱) تګلاره، سیاست، کړنلاره، خط مشي؛ ۲) تدبیر، لار، روش.

**پالیوګرافي** (pāliyográfi) ښځ.م. د لرغونو لیکونو د لوستلو پوهنه.

**پام** (pām) نر.م. ۱) توجه، خیال، اند؛ ۲) داتن سره یو ځای سندرې او سروکی ویل؛ ۳) د کوږې په څېر ونه ده چې پاڼې یې اوږدې او ځانګې نه لري؛ ۲) د لاس تلی، د لاس ورغوي.

**پامال** (pāmál) ص. نر.م. پایمال، خچ پچ، چقړي، ویجاړ، چیختاړي.

**پامالوونکی** (pāmalawúnkay) فا. نر.م. (ج. پامالوونکي) پایمالوونکی، بربادوونکی، خچ پچ کوونکی، چیختاړوونکی.

**پامته** (pāmtá) ښځ.م. اړتیا، مجبوریت، لیوالتیا.

**پامته دار** (pāmtadār) ص.نر.م. امیدوار، حاجتمن، په تمه، په هیله، په اسره.

**پامرد** (pāmárd) ص.نر.م. ۱) همتي، تکړه، زړور؛ ۲) د ځانګړي مزاج او فکر خاوند.

**پامسټ** (pāmást) ص. نر.م. پالګر، فالبین، طالع کتونکی.

**پام غلطول** (pāmǧalatawál) مص. ل. فکر بدلول، خیال بل طرف ته اړول، وخت تېرول.

**پام کول** (pāmkáwal) مص. ل. پام لرل، فکر کول، خیال ساتل، احتیاط کول.

**پاملرنه** (pāmlarána) ښځ.م (ج. پاملرنې) توجه، څارنه، ساتنه، احتیاط.

**پاملرونکی** (pāmlaarúnkay) فا.نر.م. توجه لرونکی، څارلرونکی، ساتونکی، محتاط.

**پامول** (pāmawál) مص. مت. پوهول، څیر کول، متوجه کول، پام ورته اړول.

**پامیالی** (pāmyālay) ص. نر.م. (ج. پامیالي) پوه، هوښیار، څیرک.

**پامېدل** (pāmedál) مص. ل. پوهېدل، پام کېدل.

**پان** (pān) نر.م. (ج. پانونه) ۱) یوه ونه پانه ده چې د پانو د پاسه کته، چونه اچوي او بیا چالیا، سپینه

لاچي او تمباکو په پانو کې نغاړي او خوري؛
۲) د پښتو يو ډول پټې دي.

**پاندره** (pāndrá) ښځ.م. پاندرۍ، د وريښمو او د زرتارو تارونه چې د ناوې په اوربل کې يې تومبي

**پانډول** (pānḍól) نر.م. ۱) پنډول، اونګ، اويز، په ګړۍ يوه پرزه؛ ۲) هغه ځړېدلی شی چې نوساني حرکت ولري.

**پانډه** (pānḍá) ښځ.م (ج. پانډې) ۱) د لښتو توکرۍ چې خلې او خځلې په کې اچوي؛ ۲) پېټی، پنډ، پنډه، غوټه.

**پانډي** (pānḍi) ص. نر.م. و ګ. پنډي.

**پانډې** (pānḍé) نر.م. ۱) بامېڼ، پنډت، د بامېنانو لقب؛ ۲) د هندوانو د نومونو يو جزء.

**پانسۍ** (pānsáy) ښځ.م ۱) زينډی، غرغره، زندۍ، پانسي، دار؛ ۲) د مرګ جزا چې په زندۍ ورکول کېږي.

**پانسي کونه** (pānsikawána) ښځ.م. ۱) زينډۍ کونه، په دار ځړونه؛ ۲) په مرګ محکومونه.

**پانسيون** (pānsyún) نر.م. ۱) مېلمستون، په يو ځای کې چاته استوګنه او خوراک ورکونه؛ ۲) دېره کېدنه، د طالبانو د اوسېدو ځای.

**پانکی** (pānkay) نر.م. ۱) مقصد، هدف، موخه، نصب العين؛ ۲) هغه ځلی يا نښه چې له بل نه د مخه وېشتل کېږي.

**پانګ** (pāng) نر.م. و ګ. پاڼ.

**پانګوال** (pāngwāl) ص. نر.م. شتمن، دولتمن، د پانګې څښتن، سرمايه دار، کاپيټاليسټ.

**پانګوالي** (pāngwāli) ښځ.م. شتمني، دولتمندي، سرمايه داري، کاپيټاليزم.

**پانګه** (pāngá) ښځ.م. (ج. پانګې) شته، دولت، سرمايه، ټول شوی مال، ټولې شوې پيسې.

**پانګونه** (pāngawána) ښځ.م. و ګ. پانګه اچول.

**پانو** (pānú) نر.م. بخملي، سور رنګی چينجی دی.

**پانوس** (pānús) نر.م. (ج. پانوسونه) د ډېوې، څراغ، لمپې او چراغ پوښ.

**پانه** (pāná) ښځ.م. (ج. پانې) ۱) سپيته، شپيته، چنې؛ ۲) هغه پانه ډوله لرګی چې د دروازو په چوکاټونو کې يې ټک وهي؛ ۳) الينډی، ګليتی يا لينډی، مارتوړ يک هغه برخه چې دروازه پرې خلاصېږي؛ ۴) زينج، د پېچونو او نټ او بولټ د تړلو او خلاصولو آله.

**پانيات** (pānyát) نر.م. عبرت، نصيحت، پند.

**پانيات کېدل** (pānyātkedál) مص. ل. عبرت او پند، درس اخيستنه.

**پانياتي** (pānyāti) نر.م. د پند او عبرت ور شی.

**پاڼ** (pāṇ) نر.م. ۱) پانګ، د غره کمر؛ ۲) د سيند پر غاړه هغه خټې چې ښخ يې اوبو وړی وي؛ ۳) په کوهي يا د وياله په غاړه د خاورې کمر.

**پاڼرېژ** (pāṇréž) ص نر.م. د پاڼو د تويېدلو وخت، خزان.

**پاڼکی** (pāṇkáy) ښځ.م. د پاڼې تصغير، وړه پاڼه.

**پاڼوځی** (pāṇūjay) نر.م. ۱) اوراق؛ ۲) قرطاسيه فروشي، د کتابچو، قلم او... پلورنځی.

**پاڼه** (pāṇá) ښځ.م. (ج. پاڼې) ۱) پڼه، ورقه، د کتاب پاڼه، د ونې پاڼه؛ ۲) پاڼ، د پټي پوله؛ ۳) پوڼي، د توپک په جوړې کې هغه د اوسپنې نرۍ پڼه چې کارتوس پورته کوي.

**پاڼۍ** (pāṇáy) ښځ.م. ۱) د متکو (چارمغزو) لوبه؛ ۲) طبيعت؛ ۳) کرښه، حد؛ ۴) ونډه، برخه.

**پاڼی** (pāṇay) نر.م. بخت، طالع.

**پاڼيډال** (pāṇiḍál) نر.م. اوبه وړی، اوبه رغښتي، د غره هغه برخه چې د باران اوبه پرې دوه ځايه کېږي.

**پاڼې پاڼې کول** (pāṇepāṇekawə́l) مص. مت. ۱) پخې پخې کول، له کتاب څخه یوه یوه پاڼه جلا کول؛ ۲) د گل پاڼې یوه یوه کول.

**پاڼې کول** (pāṇekawə́l) مص. ل. ۱) د پاڼو سر وهل، د پاڼو زرغونېدل؛ ۲) قطعې (تاش) کول ۲) د ونو د پاڼو شکول، د ونو پاڼې کول.

**پاڼیز** (pāṇíz) ص. نر.م. پاڼې لرونکی، د پخو ډک، هغه بوټی یا ونه چې ډېرې پاڼې لري.

**پاو** (pāw) نر.م. څلورمه برخه لکه د چارک، ساعت...

**پاوتل** (pāwtə́l) نر.م. کنوبي، خېړه، رسوب، د اوبلن یا غوړ شي په تل کې ناسته برخه.

**پاورقي** (pāwaráqi) ښځ.م. لمن لیک.

**پاوکی** (pāwákay) نر.م. ۱) د پاو تصغیر؛ ۲) د خیرات او نذر لپاره د سړي په سر پاو غله راټولول.

**پاولی** (pā́wlay) نر.م. (ج. پاولي) ۱) گینگړی، یو ډول پخوانۍ سکه وه چې ښځو به د گاڼې په ډول په غاړه کې اچوله؛ ۲) جولا، په کډې رخت جوړوونکی؛ ۳) ص. نر.م. کم عقل، ناپوه.

**پاولیتوب** (pāwlitób) نر.م. ۱) جولاتوب؛ ۲) کم عقلي، کم عقل توب، ساده توب.

**پاویلین** (pāwilyán) نر.م. پاویلیون، نندارتون، د تماشا ځای، د نمایش ځای، نندارتون.

**پاهه** (pāhá) ښځ.م. (ج. پاهې) پټه، د زخم پټی چې ملهم پرې لگېدلي وي.

**پای** (pāy) ق. ۱) آخر، انجام؛ ۲) نر.م. د بیمار روغېدل او جوړېدل.

**پایاب** (pāyā́b) نر.م. (ج. پایابونه) ۱) پایناو، بېخ، پایاو؛ ۲) د اوبو پای؛ ۳) د اوبو گودر.

**پایپ** (pā́yp) نر.م. ۱) پیپ، د اوسپنې، ربړې یا پلاستیکي نل؛ ۲) بورغو، نیپل، د تماکو څکلو آله.

**پای پای** (pāypā́y) نر.م. پالي پالي، پاپالو، په اول ځل د کوچني گرځېدل او قدم اخیستل.

**پایپ لاین** (pāyplā́yn) نر.م. د اوبو یا تېلو له یوه ځایه بل ځای ته د بیولو لپاره ربړې، سمتي یا اوسپنیز نل.

**پای پېچې** (pāypéče) ښځ.ج. پایتاوه، پایتاوې، هغه وړینې یا د کرباسو پټۍ چې تر پښو او پنډیو یې راتاووي.

**پایتاوې** (pāytāwé) ښځ.ج. هغه وړینه اوږده پلنه پټۍ چې شپانه او نور وگړي په غرونو کې د ښه مزل او د پنډیو د ژغورلو لپاره پر دواړو پنډیو د پاسه تړي.

**پایتخت** (pāytáxt) نر.م. ۱) د یوه هېواد مرکز، پلازمېنه؛ ۲) د جمهور رئیس، پادشاه د اوسېدو ښار چې په هغه کې رسمي او دولتي چارې اجرا کوي.

**پای ټکی** (pāyṭákay) نر.م. د پای ټکی، وروستی ټکی.

**پایڅور** (pāycáwar̥) ص. نر.م. هغه سړی چې پیڅې او ترخزې یې لویې وي.

**پایڅوړ** (pāycúr̥) ص. نر.م. ۱) پای، آخر، پټوړ؛ ۲) د یوې ډلې وروستی سړی، مېږه یا پسه چې له خپلې رمې څخه وروسته پاتې وي.

**پایڅه** (pāycá) ښځ.م. ۱) پیڅه، د پرتاگه خولې، وربخولې، د پرتاگه لاندینۍ برخه.

**پایڅه دوړ** (pāycadúr̥) ص. نر.م. ۱) پوچه وار، پایڅه شړپ، هغه سړی چې د پرتاگه پایڅې یې لویې وي؛ ۲) کم عقل او نادان سړی.

**پایدار** (pāydā́r) ص. نر.م. کلک، مضبوط، ټینگ، محکم، ثابت.

**پایدان** (pāydā́n) نر.م. موټر، ټانګې یا ګاډي ته د ورختلو لپاره د پښو ایښودلو ځای.

**پایدو** (pāydáw) نر.م. ۱) خبر رسوونکی، ایلچي؛ ۲) د حمام نوکر. د دوکان شاګرد.

**پایزېب** (pāyzéb) نر.م. پانزېب، پایلی، خلخال. د ښځو د پښو ګاڼه.

**پایښت** (pāyáṣt) نر.م. ۱) دوام، بقا؛ ۲) تر زیاتې مودې پورې ژوند کونه.

**پایکو** (pāykó) ښځ.م. (ج. پایکوګانې) د شولو او اوربشو یا نسوارو د ټکولو آله.

**پایکوټ** (pāykū́t) نر.م (ج. پایکوټان) دنګوالا، د شولوټکوونکی.

**پایکیله** (pāykilá) ښځ.م. (ج. پایکیلې) د پای کیلي، د کر د ځمکې وروستی ټوټه یا برخه.

**پایګاو** (pāygā́w) نر.م.د نیمې قولبې ځمکه هغه ځمکه چې دوه بزګره یې کرلی شي.

**پایګاه** (pāygā́h) ښځ.م. (ج. پایګاوې) ۱) جنګي اډه؛ ۲) د غره لمن، اډه.

**پایل** (pāyál) نر.م. ۱) اواره ځمکه، هغه پرته ځمکه چې د کرلو جوګه (وړ) وي؛ ۲) سوکړ ک.

**پایلات** (pāylā́t) نر.م. (ج. پایلاتونه) پسات، فساد، شر، پتنه، فتنه، بلا.

**پایلامه** (pāylāmá) ښځ.م. و ګ. پیلامه.

**پایلوړ** (pāylóṛ) نر.م. لټه، لټون، تلاش، لټونه، پسې ګرځېدنه.

**پایله** (pāylá) ښځ.م. ۱) پای، نتیجه، خاتمه؛ ۲) نر.ج. و ګ. پایزېب.

**پایلیک** (pā́ylik) نر.م. لمن لیک، فوټ نوټ، د پوهنتوني زده کړو د پای رساله، پاورقي.

**پایمال** (pāymā́l) ص.نر.م.ج. ۱) ځپلی، تر پښو لاندې شوی، لتاړ شوی؛ ۲) ذلیل، رسوا.

**پایناب** (pāynā́b) نر.م. پایناو، د اوبو نینګور، هغه پټی چې د ویالې په اخر کې وي.

**پایند** (pāyánd) نر.م. پایښتي، پاتنی، دوامدار.

**پایندی** (pāyánday) نر.م. پایېدونکی، پایونکی؛ ۲) کامیاب، بریالی.

**پاینغ** (pāynā́ğ) نر.م. پاینېغ، اېنغ او نېغ درد، د ګېډې سخت درد.

**پاینک** (pāynák) نر.م. (ج. پاینکونه) د تیکو مرصع کول، د تورې، ستووې یا چړې په تېکی باندې ګلکاري، په دانو (مریو) اوزرو باندې د تېکو ښکلي کول.

**پاینو** (pāynáw) نر.م. ۱) و ګ. پایناب؛ ۲) کوت، کوتی، ننوتې ځمکه، کونجینه ځمکه.

**پاینه** (pāyána) ښځ.م. (ج. پاینې) پایښت، بقا، پایېدنه، دوام.

**پاینی** (pāyánay) ص. نر.م. وروستنی، اخرنی، ترخټ، له ټولو نه وروسته، د ټولو په آخر کې.

**پایو** (pāyáw) نر.م. د کبانو د نیولو په تار پورې تړل شوی کوچنی لرګی چې د اوبو له پاسه وي.

**پایول** (pāyawā́l) مص. مت. ۱) ژوند ورکول، ژوندی ساتل، لویول؛ ۲) د اوبو پیناب معلومول ۳) مېشتول، دېره کول؛ ٤) سرته رسول.

**پایه** (pāyá) ښځ.م. (ج. پایې) ۱) مرتبه، درجه، قدر، عزت؛ ۲) ستنه، متهه؛ ۳) تهر، ارابه.

**پایېدل** (pāyedā́l) مص. ل. ۱) تر زیاتې مودې ژوندی پاتې کېدل؛ ۲) اوسېدل، مېشتېدل.

**پپ** (páp) نر.م. (ج. پپونه) رَوک، د ناوې یا ترې په څېر فلزي اله چې دوکانداران له تلې نه یو شی په کې را اخلي او خلتې ته یې وراچوي. ښېبو.

**پپخه** (papáxa) ښځ.م. (ج. پپخې) قره قلي خولۍ، پیاخه، قره قل ټوپۍ.

**پپړ** (papáṛ) ص. نـر.م. ۱) پلن، سـور ور او اوږد، تپړ، ځپړ، ځپاړ؛ ۲) تيبيک، تيک.

**پپړغوږ** (papaṛğwáẓ) ص. نر.م. پلن غوږی، ځپړ غوږ، ځپاړ غوږ، تپړ غوږ.

**پپنا** (papnā́) ص. نب. پوپنا، بالکل، برباد، نيست و نابود، پنا.

**پپناکول** (papnākawə́l) مص. مت. تباه کـول، ورکول، له منځه وړل، پناکول، بربادول.

**پپوس** (papū́s) نر.م. ۱) سېری، پرپوس؛ ۲) ص. نر.م. تنبل، لټ، کاهل.

**پپی** (papáy) ښځ.م. مچکه، بوسـه، پيـه، مچو، ښکلونه، چپی.

**پپيته** (papitá) ښځ.م. (ج. پپيتې) د ونې ختکې، يو ډول خوږه مېوه چې د ختکي په څېر وي.

**پت** (pát) نر.م ۱) عزت، ناموس، ابرو؛ ۲) د خپلوی ګالنه او پالـنه؛ ۳) دوزو، پسو د اوږدو ويښتو لاندې نرم او پاسته ويښته.

**پتارۍ** (patārə́y) ښځ.م. ۱) د مړو د لمبولو ځـای، هغه تخته يا دړه چې مړی پر مينځي؛ ۲) درجن، درځن؛ ۳) په کړاو اخته کول؛ ٤) نری پوله.

**پتاړ** (patā́ṛ) نر.م. (ج. پتاړونه) هغه لـويه توکـری چې منځ يې آزاد وي او وړه خوله لري.

**پتاسه** (patāsá) ښځ.م (ج. پتاسې) د شلمه، تشلمه، پتاسه، شيريني.

**پتاڼ** (pāṭā́ṇ) نر.م. لاره، ګودر، پتڼ، پتړ.

**پتاوی** (patā́way) نر.م (ج. پتاوي) و ګ. پېتاوی.

**پتچو** (patčū́) ښځ.م. د کتابونو ګېډی، د کتابونو شخولی، د کتابونو د ساتلو بکس يا کڅوره.

**پتخول** (patxáwəl) مص. مت. پخنی وهلی ناروغ چې د درد او ناروغۍ لـه منځـه وړلـو لـپاره يې خولې کوي.

**پتخه**(۱) (patáxa) ښځ.م. (ج. پتخې) بته، پتکه، بتکه، کورنۍ هيلۍ.

**پتخه**(۲) (patxá) ښځ.م. (ج. پتخې) تومانچه.

**پتراک** (patrā́k) نـر.م. ۱) د لـمنې اړولـی منځ؛ ۲) د آس د جلو تسمه، د آس د ملا بند.

**پترک** (patrák) نر.م. هغه ګډ يا پسه چې غوږونه يې نه ډېر لوی وي او نه واړه.

**پترکاڼی** (patarkā́ṇay) نر.م (ج. پترکاڼي) ميده تيږې، ميده کاڼي، جغل، شګه.

**پترکی** (patrákay) نر.م. ۱) د زخم خيګ (خيږ)، د زخم د ښه او وچېدو په وخت کې نری پتری؛ ۲) د اوسپنې وړوکی پتری، د لرګي نری توټنی.

**پتروټی** (patrū́ṭay) نـر.م. (ج. پتروټي) وړوکې پتری يا ښانک، خاورين بشقاب.

**پتروکی** (patrū́kay) نر.م. يو شين بوټی دی چې سور ګل لري او اوم خوړل کېږي.

**پترونجی** (patrū́njay) نر.م. خوږه مړی، د لرګي سل پتی، د لرګي زرخاني.

**پتره** (patrá) ښځ.م. ۱) د کتک او مګر په مياشتو کې هغه شنې پاڼې چې له رېبلو نه پس يو د بل د پاسه اچوي چې ځپولي ترينه جـوړ شـي بيا يې ځنډې نو کومې چې وډ وړ ډېږي هغه له بوسو سره يـو ځـای کـوي او څـارويو تـه يې ورکوي؛ ۲) د کـرکنو او بيرو وچې پاڼې؛ ۳) وچ وړ ګې.

**پتری** (patráy) ښځ.م. د ګنيو وچې پاڼې.

**پتری** (patráy) نـر.م. ۱) د ختو او اوسپنې توټه، د دال يا کنګل منځ؛ ۲) پتری؛ ۳) غوڅونه، پرې کول؛ ٤) پانه، د ډېرې خرېيلو د ماشين پاکې او چاړه؛ ٤) يو ډول کب دی؛ ٥) د سرو يا سپينو زرو ټکی، چې په امېل کې اچول کېږي يا په ټټر کې ګنډل کېږي.

**پتري والا** (patriwālā́) ص. نر.م. ۱) دجرمني تو یک یو دول؛ ۲) پتری خرڅوونکی؛ ۳) هغه روپۍ چې کونده ښځې وي.

**پتړ** (patáṛ) نر.م ۱) د سیند د بهېدو لار؛ ۲) گودر.

**پتک** (paták) نر.م. ۱) بتک، پتکی، د اوبو لوښی چې په سفر کې اوبه په کې وړي؛ ۲) هغه کاغذ چې تار وربانديې تاوېږي؛ ۳) کوسه سړی.

**پتکه** (patáka) ص. نر.م. ۱) نری او ډنگر (سړی)؛ ۲) ښځ.م. کورنۍ وره هیلۍ؛ ۳) پوړۍ، پتهه، پایتک، پاتکی.

**پتکی** (patákay) نر.م. ۱) دڅلور بولو ویښتان چې لنډ وي؛ ۲) یوه کوچنۍ مرغۍ ده؛ ۲) ص. نر.م. ډنگر او کمزوری (انسان).

**پتلون** (patlū́n). نر.م. پینټ، تر پر تاگه تنگ او کمربند پرې تړل کېږي.

**پتله** (patlá) ښځ.م. د ښینبې مردکۍ، تشله.

**پتلېز** (patléz) نر.م. پیوند، پتلیس، شکېدلو او زړو جامو ته توته ورکول.

**پتلېزول** (patlezáwal) مص. مت. ۱) پیوندول، پتلېسول؛ ۲) لېمول، ټانکه کول، کوشېرول.

**پتلېس** (patlés) نر.م. پیوند، پتلېز، لبم، کوشېر.

**پتمن** (patmán) ص. نر.م. د پت خاوند، عزتمن، ابرومند، درونـد، پتـوال، پتیال، کهسمن، د درناوي څښتن،

**پتنگ** (patáng) نـر.م. ۱) پـروانـه، پتـڼ؛ ۲) ربښتونی عاشـق، ربـښتیانی مین، ستي؛ ۳) گوډي پران.

**پتنوس** (patnū́s) نر.م. د چاینکو او پیالو د ایښودلو اوار لوښی.

**پتنه** (pıtná) ښځ.م. (ج. پتنې) ۱) فتنه، بلا او پسات، فساد؛ ۲) بدي، دښمني.

**پتنه گر** (pıtnagár) نر.م. فا. فتنه اچوونکی، فتنه کار، پتنه یي، شریر، پساتي، شیطان.

**پتنۍ** (patnáy) ښځ.م. د وښو ډکه غـونډۍ، شنه وابښینه غونډۍ.

**پتڼ** (patáṇ) نر.م. ۱) پتنگ؛ ۲) گودر، د دریـاب د تېرېدلو لاره، معبر؛ ۳) دځنگل یا د غره لاره، ولسي لاره، عامه لاره.

**پتوا** (pıtwā́) ښځ.م. فتوا، فتوی.

**پتوال** (patwā́l) ص. نر.م. وگ. پتمن.

**پتور** (patū́r) نـر.م. سینه بند، تانگ، تانگی، د څرمني یا توتې هغه ریتاړه چې د بارگیر (کچر، خره) په سینه بانديې راتاوېږي.

**پتورۍ** (patūráy) ښځ.م. توکرۍ، سبده، سوده.

**پتون** (patū́n) نـر.م. (ج. پتـونونه) ادوم، وروں، تر زنگانه څخه پورته غوښنه برخه.

**پتوڼی** (patū́ṇay) ص. نر.م. (ج. پتوڼي) پتوڼ، وروستنی (سړی)، ډانهوغ، پتی، پتور، څټ ته، تر څټ.

**پته** (patá) ښځ.م. ۱) ادرس، ځـای، نښه، درک؛ ۲) هـدف، څلی، نښکه؛ ۳) ډیمۍ؛ ٤) پـر، د تاش پانه؛ ۵) لی، لهـه، متهه خـره، هغـه ختـه چې له سټل نه وروسته په ځمکه پاتې شي.

**پتي** (páti) ښځ.م. (ج. پتۍ) ۱) پیتي، پتي، پاتي، په غورو کې پاخه شوی حبوبات؛ ۲) ص. نـر.م. دپت خاوند، اعتباري؛ ۳) وز. دا وروستاړی د لک او کروړ په اخر کې راځي او صفت جوړوي لکه کروړ پتي.

**پتی** (pátay) نـر.م. ۱) وگ. پتـوڼی؛ ۲) وگ. پتکی؛ ۳) تر سیری، تور داغ.

**پتۍ** (patáy) ښځ.م. مـال وېشنه، د مال تقسیم، برخه، ونډه.

**پتيالى** (patyā́lay) ص.نر.م. (ج. پتيالي) د پت خاوند، غيرتي، ننګيالى.

**پتې باز** (patebā́z) نر.م. (ج. پتې بازان) پرې کوونکى، قطعه باز.

**پتې بازي** (patebā́zi) ښځ.م. ۱) تګي، بېرګي، چل ول؛ ۲) د تاش لوبه، قطعه بازي.

**پتير** (pátir) ص. نر.ج. هغه اېنکل شوي اوړه چې خميره نه وي يا هغه اوړه چې رسېدلې نه وي.

**پتيره** (ptirá) ښځ.م. هغه ډوډۍ چې له پتيرو اوړو څخه پخه شوې وي.

**پتيله** (patilá) ښځ.م. (ج. پتيلې) ۱) ډېګچي، ډېګبر، داسې ډېګ چې خوله او بېخ يې سره مساوي وي؛ ۲) پلېته. پلته. فتيله. فليطه.

**پتېيل** (pateyə́l) مص. مت. تصميم اختيارول. اراده کول. نيت کول.

**پتېيلى** (pateyə́lay) مف.نر.م. اراده ورته شوې، تصميم ورته اختيار شوى، نيت ورته شوى.

**پټ** (paṭ) نر.م. (ج. پټونه) ۱) ړکى، پاټکى، د زينې پله؛ ۲) پوړ؛ ۳) د ونې پوستکى؛ ۴) د اوښ د سينې دواړه اړخونه، د قمرۍ د غاړې طوقونه؛ ۵) تبه؛ ۶) اپلتې؛ ۷) بټ، چول، بيابان، سارا؛ ۹) د دباغۍ هغه رنګ چې د نباتاتو له پوټکي او ريښو څخه جوړېږي؛ ۱۰) د دروازې پله؛ ۱۱) جال، تور؛ ۱۲) ص.نر.م. پنا، ناڅرګند، نه ليدل کېدونکى، پوښلى؛ ۱۳) غلا.

**پټاټې** (paṭā́te) ښځ.ج. کچالو، الوګان، کچالان.

**پټاخ** (paṭā́x) اواز، ترهګى اچولو وروسته د چرګې اواز، مجازاً د لافې او وياړ مانا وې لري.

**پټار** (paṭā́r) ص.نر.م. ۱) برګ څلور بولى، پټې، پنډواره؛ ۲) لرګين ګرد د قوطى چې پاړوګران په کې ماران اچوي.

**پټاره** (paṭārá) ښځ.م. ۱) نوار، تړانګه، پټې، د څرمنې يا د ونې له پوټکي جلا شوې تسمه؛ ۲) کربنه، ليک، خط (د بدن پوست د پاسه)؛ ۳) د مار پخواني پوستکى.

**پټاس** (paṭā́s) نر.م. باروت، د ټوپک دارو.

**پټاسه** (paṭāsá) ښځ.م. (ج. پټاسې) ۱) و.ګ. پټاسه ۲) د ګنو پوګ. د ګنيو تفاله.

**پټاکى** (paṭākáy) ښځ.م. ۱) پټاخى، پټاقى؛ ۲) پټاس، د کارتوس د اور لګولو شى.

**پټاکې** (paṭā́ke) ښځ.ج. باټې، لاپې، غورې.

**پټان** (paṭā́n) نر.م. ۱) له سند نه کوز خلک پښتون ته پټان وايي؛ ۲) د پکتيا په ولايت کې د يوې ولسوالۍ نوم دى.

**پټ پټانى** (paṭpaṭā́nay) نر.م. پټ پټوونى، ګنيمات، د کوچنيانو يوه لوبه ده.

**پټخ** (paṭ(u,á)x) ص. نر.م. ۱) سخت، ديږ، ځيږ، کيز؛ ۲) هغه بادرنګ چې په جوړ نګ کې وخت ډېر پر تېر شوى وي.

**پټخوالى** (paṭū́xwā́lay) ص. نر.م. کلکوالى، سختوالى، ځيږوالى، ديږوالى.

**پټ خولى** (paṭxū́lay) ص. نر.م. (ج. پټ خولي) ۱) غلى، ارام، چپ؛ ۲) مؤدب، باادبه.

**پټخېدل** (paṭaxedə́l) مص. ل. ۱) سختېدل، کلکېدل، ځيږېدل؛ ۲) خوسا کېدل.

**پټري** (pátri) ښځ.م. و.ګ. بټوه.

**پټ سترګى** (paṭstə́rgay) نر.م. ۱) بې پروا؛ ۲) بې پاسه، بې لحاظه.

**پټ سورى** (paṭsū́ray) نر.م. (ج. پټ سوري) ګونډى، ګزارى، ګيزارى.

**پټ غشوى** (paṭğušū́y) نر.م. د ماشومانو يوه لوبه ده.

**پټک** (paṭák) نر.م. ۱) پنډوس؛ ۲) د مچلوغـزې کاسې؛ ۳) دحبوباتو يو ډول؛ ٤) خوږې، گردې شيرينۍ دې چې د ويلنې جوهر لري.

**پټکارى** (paṭkā́ray) نر.م. په پټه تښتېدونکى، په پټه د يوه کار کوونکى.

**پټ کاکى** (paṭkā́kay) نر.م. اړى، دکوچنيانو يوه لوبه ده.

**پټکړى** (paṭkáṛay) نر.م. و گ. خورى.

**پټکه**[1] (paṭáka) ښځ.م. (ج. پټکې) ۱) پټله، تهدبد، کاوړ؛ ۲) ځوانه چرگه؛ ۳) پوخه، اومه؛ ۲) يو ډول کروت.

**پټکه**[2] (paṭká) ښځ.م. (ج. پټکې) ۱) مـلابند؛ ۲) د مرغيو نيولو لومه يا داه **پړکه**.

**پټکنى** (paṭkáṇay) نر.م. (ج. پټکني) و گ. خورى.

**پټکى** (paṭkáy) نر.م (ج. پټکي) بگړى، لونگى، لنگوټه، لنگوټې.

**پټگنى** (paṭganáy) ښځ.م. مورچل، مورچه، تانه، بورجل، څوکى، سنگر.

**پټلى** (paṭláy) ښځ.م. ج. ۱) د ربل خط؛ ۲) دويالو يا نهرونو په غاړه خام سړک.

**پټم** (paṭám) نر.م. (ج. پټمونه) ۱) د اوبو يا ويالې بند؛ ۲) اوبه ډم کول، اوبه ډنډ کول.

**پټمخى** (paṭmáxay) نر.م. گونډى، گنډولى، د غنمو دانې چې تر غوبل کـولو وروسته په وږى کې پاتې شوې وي.

**پټن**[1] (paṭán) نر.م. گودر، بندر، پټنگ.

**پټن**[2] (piṭán) نر.م. وير، غم، ماتم، ژړا.

**پټنځاى** (paṭanʒā́y) نر.م. څوځاى، کمينگاه، پټونى، مخفيگاه.

**پټو** (paṭū́) نر.م. (ج. پټوگان) څادر، جوړته، دوپټه، نارينه ورين يا پېړ څادر.

**پټوار** (paṭwā́r) ص. نر.م. (ج. پټواران) پټواري، جريبکښ، جريب گرندى.

**پټوالى** (paṭwā́lay) نر.م. ۱) دڅـرگندوالي ضد، پټېدنه؛ ۲) دلوڅوالي ضد، ستر.

**پټوسکى** (paṭū́skay) نر.م. ۱) يخدان، د څرمنې صندوق؛ ۲) بخـرکى، خڅوسکى، خڅوزى، زړى؛ ۲) ډېر لږ شى.

**پټوکى** (paṭū́kay نر.م. (ج. پټوکي) پوستکى، د ونې پوست، پوتخى، پټوخى، پوتکى.

**پټول**[1] (paṭū́l) نر.م. د يوې حلالې مرغى نوم دى.

**پټول**[2] (paṭawál) مص. مت. ۱) په څه شي باندې سر اينبودل، جامه وراغوستل؛ ۲) غلا کـول؛ ۳) نه ويل، نه ښکاره کول؛ ٤) پنا کول.

**پټون** (paṭū́n) نر.م. ۱) مـورچل، سنگر، څوکى؛ ۲) څو، داو؛ ۳) لاره نيونه.

**پټونى** (paṭónay) نر.م. (ج. پټوني) ۱) څادر، پټو، ورين څادر؛ ۲) شال، پړونى، ټيکرى.

**پټووني** (paṭawū́ni) نر.ج. پټ شوي شيان، غلا شوي شيان. ۲) دماشومانو لوبو ډول لوبه.

**پټوه**[1] (paṭwá) ښځ.م. ۱) غاړه گـى، طـوق، غاړکى؛ ۲) پيينه، ۳) و گ. بټوه.

**پټوه**[2] (paṭáwa) ښځ.م. د ميزري دانې او تخم.

**پټوه گر** (paṭwagár) فا.نر.م. (ج. پټوه گـران) پټوه گرى، غاړه کى يا طوق جوړوونکى.

**پټه** (paṭá) ښځ.م. (ج. پټې) ۱) د تـورې، ټوپک د پوښ تسمه؛ ۲) دډمانو دچړې د تېره کولو تسمه ۳) د سپي د غاړې تسمه؛ ٤) دونې پوستکى؛ ٥) تخته؛ ٦) د زينې پاټکى؛ ۷) د اوسپنې پترى؛ ۸) دموټر کمانى؛ ۹) د مرغانو د غاړې طوق؛ ۱۰) پلستر، پټى؛ ۱۱) ص. ښځ.م. ناڅرگند؛ ۱۲) په غلا.

**پټه دار** (paṭadā̆r) ص. نر. م. ج. لیکې لرونکی، خط دار، هر هغه شی چې کرښې ولري.

**پټه دانه** (paṭadānā́) ښځ. م. ۱) هغه کباب چې د پښتورگی، ینې، زړه او... پخوي؛ ۲) میعادي دانه، نسکوره دانه.

**پټی** (pā́ṭay) نر. م (ج. پټي) د کرنې ځمکه، د کروندې ځمکه، د ځمکې یوه ټوټه چې پولې ولري.

**پټی** (paṭáy) ښځ. م. ۱) د پرهار د پاسه هغه پلستر، پټه چې کېښودل کېږي؛ ۲) پاڼ، پـونه؛ ۳) د القبې د تورو ردیف.

**پټېدل** (paṭedə́l) مص. ل. ۱) نه ښکاره کېدل، پناه کېدل، غایبېدل؛ ۲) ځان ځنگ ته کول؛ ۳) غلا کېدل، ورکېدل؛ ۵) تښتېدل؛ ٦) ځادر، برستن او شړی پر ځان اچول.

**پټېره** (paṭerá) ښځ. م. ۱) بش، ویشه؛ ۲) تمبې، دړه، بوتی، دگی، چارتراش.

**پټېلن** (paṭelə́n) نر. م. پټلین، پلیتن، د جولاگانو یوه آله، هغه لرگی چې تانسته ترې تاووي.

**پټېمو** (paṭemū́) نر. م. لعنت، ښکنځل، سپکې سپورې، ستغې سپورې.

**پټینه** (paṭiná) ص. ښځ. م. پټ لرونکی، پوستکی لرونکې، پټوکی لرونکې.

**پج** (páj) نر. م (ج. پجونه) پجنه، پج وهنه، هغه ښکر چې د وینې د ایستلو لپاره یې لگوي.

**پجن** (paján) نر. م ۱) بتی، د خښتو داښ؛ ۲) پجه، د کلالانو د لوښو پخولو ځای.

**پجه وال** (pajawā́l) نر. م. (ج. پجه والان) کلال، داښ والا، بتی والا.

**پچ** (pā́č) نـر. م. ۱) هغه ښکلی گل چې پر بنیسنې یا اوسپنې کښل شوی وي؛ ۲) پچک، کـوناټ، هغه هگۍ چې سر یې مات او بېخ یې جوړ وي

**پچاړی** (pačāṛáy) ښځ. م. ج. وروسته، شاته، د آس په وروستیو پښتو کې رسی اچول.

**پچاړي** (pačāṛi) ښځ. م. ۱) د کټ لنگه، هغه رسی چې د کټ له اوبدلو وروسته په ښکتنۍ برخه کې د ټینگولو لپاره کارېږي؛ ۲) هغه رسی چې د کټاړ غوا په یوه یا دواړو وروستیو پښو کې یې تړي.

**پچ پچونکی** (pačpačū́nkay) نـر. م. گوته، د ماشومانو او ځوانانو یوه لوبه ده.

**پچړاک** (pačṛā́k) نر. م. سور وزنه، سر وزنه، بډه، بگه، گینډه، په پرتاگه کې د پرتوگ ابښ ځای.

**پچموزه** (pačmūzá) ښځ. م. ملنډه، مسخره، توکه، پېچمې، پچمه.

**پچن** (pačə́n) ص. نـر. م. ۱) بدشکله، بدڅواره؛ ۲) زیاتې پچې کوونکی، په پچو لړلی. ۳) وبرېدونکی

**پچوری** (pačóṛay) نر. م. (ج. پچوري) ټیکری، ځادر، لوپټه، دوپټه.

**پچوی** (pačáway) نر. م. د غوا د لکۍ غوټه وېښته، د غوا د لکۍ وتی (ځونډی).

**پچه** (pačā́) ښځ. م (ج. پچې) ۱) دوزې، پسه، اوښ، کلک او گردی غایطه مواد؛ ۲) کـولشتره، یوه لوبه ده؛ ٤) قرعه؛ ٥) د کوټې د چت نرۍ لښتې چې د لرگو د پاسه یې اچوي.

**پچه اچول** (pačaāčawə́l) مص. مت. قرعه کښې، خسنې ایستل، د مشترک مال داښې ویشل چې ټولو مشترکینو ته د قناعت وړ وي.

**پچه ختل** (pačaxatə́l) مص. ل. ۱) عسکرۍ ته جلبېدل؛ ۲) د خسنې ایستلو په ذریعه د ی چا ونډه ټاکل کېدل.

**پچی** (pačáy) ښځ. م. ۱) د مزرو یا د لوخو کوچنۍ توکرۍ؛ ۲) دبادرنگو، ختکو، هندوانو... ونې

او اومې دانې؛ ۳) ص. نب. ښکلې ته هم مجازاً پچې وايي؛ ٤) و گ. پوچې.
**پچيز** (pačiz) نسر. م. اړوونکی، پچيس، خطکی، چارخط، قطار، ختکی، مزری، يوه لوبه ده.
**پخ** (pác) ص. نر. م. ج. هغه څه چې تېره نه وي، کُند؛ ۲) لټ، سست، تنبل، بېکاره.
**پخانی** (pacáṇay) نسر. م. خخوڅی، خخوسکی، ذره، وروکی، پوتی، پخنی.
**پخوالی** (pacwálay) نسر. م. ۱) پختوب، د تېـز والی ضد؛ ۲) لټي؛ ۳) جرأت نه لرنه.
**پخول** (pacawál) مص. مت. له پرې کولو ايستل، د چاړې، تورې خولې اوښتل.
**پخېدل** (pacedál) مص. ل. د شي د تېـزوالي لـه منځه تلل، د چړې جوهر تلل، لېش کمېدل.
**په څېر** (pacér) ق. په شان، په قسم، غوندې، لکه، په رنگ، په څېره، ورته، په ډول.
**پخ** (páx) نر. م. ۱) اوخ، د مـاشـومانو د وېرولـو غږ؛ ۲) د حملې په وخت کې د پيشو غږ؛ ۳) دلـبـوه يو ډول ناروغي؛ ٤) زندې؛ ۲) لومه، دام.
**پخاتي** (paxáṭi) ښځ. م. منباوې، پخاړې، د مېږو د لم په لاندنۍ برخه کې نښتې پچې.
**پخپله** (paxpála) ق. د خپله انده. شخصاً، ځاني، ذاتي، په رضا، په خوښه.
**پختکه** (paxtáka) ښځ. م. (ج. پختکې) فاخته، بوبو کوتره، گوگو شتو، ببوغه، بابغه.
**پخري** (paxri) ښځ. م. ۱) کودني، کوډړي، توکره؛ ۲) ص. نب. بې اجورې (کار)، بې مزده، فخري، افتخاري؛ ۳) يو ډول سپين کندهاري انگور دی.
**پخړن** (paxṛán) ص. نر. م. چخړن، چخړک، چيخن، هغه څوک چې سترگې يې ډېرې چيخړې لري.

**پخړې** (pıxṛé) ښځ. مج. چېدړې، چړېدې، چوخړې، چخې، د سترگو د کونجو چيخړې.
**پخساک** (paxsák) نر. م. فکر، چورت.
**پخساکگر** (paxsākgár) ص. نسر. م. قهـرژلی، کاوړی، غوسه ناک.
**پخساکي** (paxsáki) ص. نب. غوسه کېدونکی، قهرجن، غصه کېدونکی.
**پخسله** (paxslá) ښځ. م. پخه خنبته.
**پخسول** (paxsawál) مص. مت. ۱) په غوسه کول، په قهرول؛ ۲) ځورول، خفه کول، کړول.
**پخسېدل** (paxsedál) مص. ل. ۱) په غوسه کېدل، قهرېدل؛ ۲) ربړېدل، ځورېدل؛ ۳) زړه کېدل، يو شی ته کړېدل او ځورېدل.
**پخسيه** (paxsyá) ص. نب. اوبرن، اوبلن، مايع، اوبجن، خورين شی يا څيز.
**پخشو** (paxšó) ص. نر. م. پخښو، غلی، ارام، کرار
**پخک** (puxák) نر. م. د کوچنيانو په ژبه پسه.
**پخکي** (puxáki) ښځ. م. د کوچنيانو د ډارولو غږ.
**پخل** (paxál) نر. م. ۱) شولگر، شيلگر، هغه ځمکه چې اوبه په کې ډنډ شوې وي او د شولو کرلو لپاره تيار شوي؛ ۲) درمند اچول، پلاله اچول.
**پخلا** (puxlá) ص. نب. د مرور ضد، دلاسا، رضا، خوښ، خوشاله، دلاسه.
**پخلاگر** (puxlāgár) فا. نسر. م. پخلاکوونکی، روغوال، هغه څوک چې دوه مرور کسان سره پخلا کوي.
**پخلاوالی** (puxlāwálay) نسر. م. د لاسه والی، دلاسايي، پخلاتوب، جوړه، سوله، رضا کېدنه.
**پخلاينه** (poxlāyána) پخلاتوب، مصالحه.
**پخلنځی** (paxlánǰay) نسر. م. بـاورچيخـوله، اشپزخانه، د پخلي ځای.

پخله (paxlá) ښځ.م. (ج. پخلې) هغه پخې یا پاتې چې د غنمو تر لـو وروسته د غنمو په وږ (وټ) کې پاتې وي.

پخلی (páxlay) نر.م (ج. پخلي) ۱) پخونه، پخول، په اور باندې د خوړو برابرونه؛ ۲) مضبوطوالی پوخوالی، ټینګوالی، تاکید.

پخن (paxán) ص. نر.م. ۱) هغه سړی چې سر یې پخې کوي؛ ۲) پک، ګنجی؛ ۳) پت لـرونکی، پخی لرونکی شال او نور؛ ٤) نـر.م. مینیـرال، جامد مواد، کلک شیان.

پخناتی (puxnáṭay) ص. نـر.م. پخنی، پخنی، پوخناتی، مشروبې ماشوم، هغه کوچنی هـلک چې پخې خبرې کوي.

پخنه (paxána) ښځ.م. بویه، یو تریخ بوټی دی.

پخوا (paxwā́) ق. ړومبی، وړومبی، مخکې، تېر وخت، وړاندې، څنډن.

پخواتر پخوا (paxwātarpaxwā́) ق. مخکې له مخکې، پخوا له پخوا.

پخوالی (poxwā́lay) نر.م ۱) پوخوالی؛ کلکوالی، مضبوطوالی، د کار یا خبرې ټینګوالی.

پخوانی (paxwā́nay) ص. نـر.م. (ج. پخواني) لرغونی، مخکنی، ړومبنی، څنډن.

پخوړ (paxū́ṛ) نر.م. نښتېځل، نښېځل، څېښېل، د تاوولو سره له کالیو څخه د اوبو ایستل.

پخوړول (paxūṛawál) مـص. مت. نښتېځل، د څه څیز اوبه د تاوولو او فشار په ذریعه ایستل.

پخول (paxawál) مص. مت. ۱) په اور یا حـرارت باندې د خـوړو تیـارول؛ ۲) د خبرې کلکـول او ټینګول، وعده کول، ژبه کول.

پخوله (paxwā́la) ښځ.م. پخولې، شنه توخله، توره توخله، توره غاړه، یوه ناروغي ده.

پخوونی (paxawū́nay) ص. نـر.م. پخـوونکی، پخلیکار، اشپز، باورچي.

پخه (paxá) ص. ښځ.م. (ج. پخې) ۱) په اور تیار شوې، پخه شوې؛ ۲) ټینګه، کلکه وعده؛ ۳) پخناتی؛ ٤) زړه، بوډۍ؛ ۵) ښځ.م. هغه سپین میده میده پوستکي چې لـه ځینو ویښتانو نه راتویېږي؛ ٦) د پمن څـاروي د پوستکي پخې؛ ۷) د چرګانو بنه؛ ۸) روني پانه.

پخی (páxay) ص. نـر.م. ۱) ګنجی، پمـن، پک؛ ۲) د بدن خارښت؛ ۳) نر.م. هغه ماشوم چې نوی په خبرو راغلی وي.

پخېدل (paxedál) مص. ل. ۱) د حرارت په ذریعه خـواړه تیارېدل؛ ۲) د خـامې مـېوې رسـېدل؛ ۳) د داني نه زوه راتلل؛ ٤) د بر زیات ټینګېدل؛ ۵) عمر زړوالی ته رسـېدل؛ ٦) شپه تېرېدل؛ ۷) وعده پر ځای کېدل؛ ۸) کټ کټ خندل.

پخیر (pxáyr) ص. نـر.م. ۱) روغ، جوړ، په خیر خیریت؛ ۲) ستړی مه شې! په خیر راغلې!

پخېل (paxél) مص. مت. په خوله راوستل، ناروغ، خولې کول، پرخېل، پرخیال.

پخېل والی (paxelwā́lay) نر.م. د خـولې کېدو حالت، خولې کېدنه، خولې راتلنه.

پدل (padál) نر.م ۱) تاثیر، اغېز؛ ۲) عقل، شعور.

پدم (padám) نر.م. ۱) د شماریو عدد (کوادریلین) یعنی ۱۰۰۰ تریلیونه؛ ۲) ښاپېری؛ ۳) یو ډول زهر لرونکی مار.

پدمانی (padmā́nay) ص. ښځ.م. ښایسته، زیاته پې مخې، ښکلې.

پدول (padū́l) ص. نر.م. شیطان چوغلګر، غماز.

پدیده (padidá) ښځ.م. (ج. پدېدې) ۱) پېښه، واقعه، حادثه، حالت؛ ۲) هغه څه چې درې بعده لري؛

طول، عرض، حجم؛ ۳) فل. د ماهیت مستقیمه او ظاهري تجلا.

**پډو** (paḍū́) نر.م. (ج. پډوان) پکه‌ بشه، مردار خور مرغه، مودمه، گرگس، کجیر.

**پډی** (paḍáy) ص.نر.م. کچل، کچی، کجل، چوډی، پیډی، کوړپښی.

**پر** (pár) اد. ۱) الیز توری، لکه پر قلم مې وکښل، پرې، د پاسه، ورباندې؛ ۲) نر.م. بڼه، بڼکه، وزر، پخه؛ ۳) بوه گال، د لوخې گل، د ډیلو بصل، د دورمې گل؛ ۴) د ښنگرو یو بل سره لگېدنه؛ ۵) په الوتلو کې د مرغانو د وزرو اواز.

**پراته** (prātá) ص. نر.ج. ۱) پربوتلي، څملاستلي، غځېدلي؛ ۲) اېښول شوي؛ ۳) بېکاره، تنبل؛ ۴) ص. نر.ج. چټي، عبث، فضول.

**پراټل** (prāṭál) مت. ۱) زخمي کول، ټپي کول؛ ۲) رټل، ترټل، غندنه.

**پراټه** (paṛātá) ښځ.م. هغه نرۍ ډوډۍ چې په تبۍ باندې یې په غوړو کې پخوي.

**پراچه** (parāčá) ص.نر.م. ۱) سوداگر، تجار، پرانچه، بزاز؛ ۲) کرایه کښن؛ ۳) د یوه قوم نوم دی؛ ۴) بې لحاظه، بې مخه. ۵) دخرو او کچرو چلوونکی.

**پراچگی** (parāčgáy) نر.م. کوچنی سوداگر، وړوکی تجار.

**پراچي** (parā́či) ښځ.م. د افغانستان یوه لرغونې ژبه ده، ددې ژبې اصلي سیمه نجراب دی.

**پراخ** (parā́x) ص. نر.م. ج. ۱) ارت، پلن، وسیع؛ ۲) ډېر، زیات.

**پراخ بنسټ** (parāxbansáṭa) نر.م. پراخ بنسټی، پراخ بنیاده، وسیع البنیاده.

**پراختیا** (prāxtyā́) ښځ.م. پراخي.

**پراختیاپال** (prāxtyāpā́l) ص.نر.م. پراختیا غوښتونکی، توسعه طلب.

**پراختیايي** (prāxtyā́yi) نر.م. توسعه یي، غځېدلی.

**پراخوالی** (parāxwā́lay) نر.م. ۱) ارتوالی، پلنوالی، پراختیا؛ ۲) ډېروالی، زیاتوالی.

**پرار** (parā́r) ص.نر.م. (ج. پراریان) ۱) شړل شوی، تښتېدلی، فرار شوی؛ ۲) تښتنه، تېښته، فرار، تښتېدنه.

**پرارپاڼه** (prārpāṇá) ښځ.م. و.گ. پرهارپاڼه.

**پرارتیا** (parārtyā́) ښځ.م. تښتېدنه، له ملکه وتنه.

**پراري** (parā́ri) ص. نب. تښتېدلی، فراري شوی.

**پرارېدنه** (parāredána) ښځ.م. تښتېدنه، فرارېدنه، ځغلېدنه، فرار کېدنه.

**پراشوټ** (parāšū́ṭ) نر.م. ۱) هوايي چترۍ، داسې وسیله ده چې په هغې سره له الوتکو نه ځان راغورځوي؛ ۲) یو ډول توکر دی.

**پراکریت** (parākrít) نر.م. د پراکریت ژبه، د سانسکریټ نه وروسته د هندي آریاییانو عامیانه او غیر ادبي ژبه.

**پراگراف** (parāgrā́f) نر.م. پاراگراف، د لیکنې یوه برخه (بند)، د متن هغه برخه چې یو بشپړ مفهوم د څو جملو په ترځ کې افاده کېږي.

**پراگماټیزم** (prāgmātizə́m) نر.م. یوه معاصره ایډیالیستي فلسفه ده چې وایي حقیقت هغه څه دی چې گټور وي.

**پرانا** (purā́nā) نر.م. د هندوانو مذهبي کتابونه دي چې ویدونه په کې تشریح شوي دي.

**پرانتز** (prāntíz) نر.م. معترضه جمله، قوسونه.

**پرانتل** (prānatál) مص. مت ۱) خلاصول، بېرته کول، پرانیستل؛ ۲) افتتاح کول.

**پرانیستل** (pranistál) مص. مت. ١) خلاصول، بېرته کول، پرانیتل، پرانستل، پرانیځل؛ ٢) افتتاح کول.

**پرانیستونکې وینا** (pranistūnkewayná) ښځ. م. افتتاحیه وینا.

**پرانیستی لیک** (pranistaylik) ق. سر پرانیستی لیک، سرواز لیک. سرخلاص لیک.

**پراو** (práw) نر. م. کونوبی، کنوبی، پاتې شوي بنوروا.

**پراویز** (parāwéz) نر. م. (ج. پراویزونه) پورویز، هغه پېښه (توته) چې د لمنې لاندې یا باندې گرداگرده گنډله کېږي.

**پرپای** (parpāy) ق. په لاس کې، په واک کې، په اختیار کې.

**پرپر** (parpár) اد. دردر، تر تر یو ډول اواز او غږ.

**پرپرک** (parparák) نر. م. د وزرو د وهلو اواز.

**پرپرکی** (parparákay) نر. م. یو ډول وزرلرونکی چینجی چې زیاتره په گنو کې پیدا کېږي.

**پرپری** (parpáray) نر. م. ١) د مرغه د وزرو اواز؛ ٢) متبه کوره، توکه، شیتی، د جوارو شیته.

**پرپېړه** (parpeṛá) ښځ. م. ږخری، پوشکی، گوځی، مرخېړی، گوبلکه، ستوری.

**پرت**(١) (párt) ص. نر. م. ترلی، پرت.

**پرت**(٢) (prát) ص. نر. م. ١) عبث، بې ځایه، فضول؛ ٢) نر. م. د خراشکې د توکولو اواز.

**پرتال** (partā́l) لتون، پرتال، لتونه، غور.

**پرتکې** (pratáke) نر. م. برتبدنه، د مرغې د نیولو په وخت د وزرو اواز.

**پرتل**(١) (partál) نر. م. ١) تیروری، هغه سامان چې کوچیان یې له کوچ نه مخکې بل ځای ته لېږي؛ ٢) د مردکیو لوبه؛ ٣) یو ه ونه ده؛ ٤) د ساروان د اوښ د پاسه ترلی ترنگر.

**پرتل**(٢) (pratál) مص. ل. لوېدل، پرځل، غورځېدل، پرځېدل، ځملاستل.

**پرتله** (partála) ښځ. م. مقایسه، مقابله.

**پرتلیز** (partáliz) نر. م. د پرتلې په ډول، مقایسوي، مقابلوي.

**پرتم** (partám) نر. م. دبدبه، شان وشوکت، جلال.

**پرتمین** (partámin) ص. نر. م. روښناک، د شان او دبدبې خاوند، هیبتناک.

**پرتوگ** (partúg) نر. م. پرتوگ، هغه لباس چې د نامه نه لاندې تر ښنگرو پورې اغوستل کېږي.

**پرتوگاښ** (partūgā́ṣ) نر. م. بگه، گنده، پرتوغاښ، د پرتوگ ترلو مزی.

**پرته** (práta) ق. ١) بې، بدون، بې له، بې له دې؛ ٢) ښځ. م. ترته، فضولې خبرې، چتیات.

**پرتیت** (pártit) نر. م. لحاظ، خاطر.

**پرتېدل**(١) (pratedál) مص. ل. ١) مسخه کېدل، د مخ جثه ورانېده؛ ٢) چتیات ویل.

**پرتېدل**(٢) (partedál) مص. ل. دغوږ سوری بندېدل.

**پرچ** (prač) نر. م ١) ترینجی، انتروشی؛ ٢) د منډې په وخت کې د هوسۍ اواز؛ ٣) غاب، ریکیبی.

**پرچال** (parčā́l) نر. م. بلۍ، د کلاد دېوال د تیږد چجه.

**پرچاو** (parčā́w) نر. م. ١) د ژرندې د درولو لپاره د ناوې سره نښېږي ورخ؛ ٢) ق. پارچاو، اتال.

**پرچتی** (parčā́tay) نر. م. ١) د چت کاگل (اخېر)؛ ٢) د دېوال سوری، د دېوال چجه؛ ٣) سردو بلۍ، ښنډلی، سرنندی.

**پرچک** (pračák) ښځ. م. (ج. پرچکونه) پراویز، پرویز، پېښه، کناری، هغه زري توته چې د ځادر، ټیکری په ښنډو پورې یې گنډي.

**پرچل**[1] (parčál) نر.م. خسا میوه، د میوې پاتې شونې.

**پرچل**[2] (práčal) مص. مت. پسرچ وهل، پرنجی کول، انتوسی کول، پرچنګ.

**پرچنه** (pračána) ښځ.م. پرچی، انتوسی، انړی، پرچنګ، ترینجی، پرنجی.

**پرچوخی** (parčū́xay) نر.م. دزخم پټخی، خیګ، خنډ، پترکی، کرنډ، خیږ، د زخم پټ.

**پرچون** (parčū́n) نر.م.ج. کمه کمه سودا کول، له دوکان څخه لږ لږ شی رانیول، د عمده ضد.

**پرچی** (práčay) نر.م. پرنجی، انتوسی، انړی.

**پرځای** (parǰā́y) ق. ۱) ځای په ځای، تم، ولاړ، موجود، ساکن؛ ۲) عوض، بدل، عوضی.

**پرځول** (parǰawā́l) مص. مت. غـورځول، ځملول، پرې ایستل، نسکورول، پرتاوول.

**پرځېدل** (parǰedā́l) مص. ل. پرزېدل، پرېوتل، سکورېدل، غورځېدل، ځملاستل.

**پرخ** (párx) نـر.م. هغه اواز چې د خولې په ذریعه د اوبو له شیندلو څخه پیدا کېږي.

**پرخاش** (parxā́š) نر.م. ۱) د خولې جنګ، د خولې جګړه؛ ۲) ص. نر.م. بې پروایي، بې باکه.

**پرخټ** (parxáṭ) نر.م. ۱) په لوښي کې له اندازې نه زیاته وره شوې ډوډۍ؛ ۲) په زوره خندا.

**پرخم** (parxám) نر.م ۱) بیرغ، جنډه؛ ۲) دلکی وتی، دلکی ځونډی؛ ۲) چوری، مچ شړونی.

**پرخوا** (parxwā́) ص.نب. پلوي، طرفدار، ملګری، په طرف ولاړ، په پلو.

**پرخواتوب** (parxwātób) نـر.م. طرفداري، پلوي، ملګرتیا، پرخواوالی، پلونیونه.

**پرخول** (parxawál) مص. مت. شیندل، پونه کول (په خوله)، شنل، د اوبو پاشل.

**پرخه** (parxá) ښځ.م. (ج. پرخې) ۱) شبنم، شونم، چنی؛ ۲) ښورمک، نری او مېده باران.

**پرخیال** (parxyā́l) نـر.م. د ناروغ خولې کول، پر رنځور او ناروغ خوله راوستنه.

**پرخیز** (párxiz) ص. نـر.م. ۱) له انصافه لېرې، بې انصافه؛ ۲) فرق کوونکی.

**پرداخت** (pardā́xt) نر.م. پـروا، توجه، پاملرنه، پوښتنه، پلټنه.

**پرده** (pardá) ښځ.م (ج. پردې) ۱) هغه توکر چې پر کـړکیو او دروازو ځـړول کـېږي؛ ۲) پټ، راز؛ ۳) حجاب، ستر؛ ٤) هغه نازک حایل چې دوې برخې سره بېلوي- د سږو پرده؛ ۵) د مجبوریت له مخې ګوزاره؛ ٦) مو. د موسیقي د یوې آلې دانه یا سوری، د موسیقي د یوې آلې کرچ.

**پرده پوښ** (pardápoṣ) نر.م. پرده ساتی، پرده دار.

**پردی** (parday, práday) ص. نـر.م. (ج. پـردي) بېګانه، اجنبي.

**پردی پالنه** (pradaypālána) ښځ.م. پردی واله، بېګانه پرستي.

**پردیس** (pard(é,i)s) ص.نر.م. پردیسی، مسافر، د بل ځای، جلاوطن.

**پرړه** (parṛá) ښځ.م. (ج. پرړې) توکه، وشته؛ ۲) لا په باټه، دروغ ربنتیا، لا په شا په.

**پرړي** (párṛi) ښځ.م. کولرا، وبا، بابو، هیضه.

**پرزه** (purzá) ښځ.م. (ج. پرزې) ۱) ټوټه، ټوکـره، حصه، د ماشین سامان؛ ۲) لنډ لیک، رقعه.

**پرستار** (prastā́r) نر.م. (ج. پرستاران) ۱) نرس، ناروغپال؛ ۲) څوک چې د بل غم خوري.

**پرستاري** (prastā́ri) ښځ.م. ۱) ناروغ پالنه، د ناروغـانو خدمت او پالـنه، نـرس دنده؛ ۲) غمخوري، څارنه، مواظبت.

**پرسد** (parsád) ص. نر.م. ۱) پرحال. پرهوش. په خود. پرخود: ۲) هوښيار. عاقل.

**پرسنده** (parsánda) ښځ.م. وچه غوښنه. د لاندي وچه غوښنه.

**پرسنه** (parsná) ښځ.م. د اس پرشنه، د اس انبار، لړو، خشنه، خاشنه، خراشنه.

**پرسوناژ** (parsūnáž) نر.م.ج. ۱) لوی او نامتو سړی، د پام وړ سړی: ۲) ايکټر، لوبغاړی.

**پرسونل** (parsūnál) نر.ج ۱) شخصي، خصوصي، په ځان اخته: ۲) فني خلک، فني عمله، غړی.

**پرش** [۱] (páRš) نر.م. په متروکه يا تازينه وهل.

**پرش** [۲] (práš) نر.م ۱) پرشی، پرشهار: ۲) پرنجی: ۳) په چا باندې ناڅاپه قهرېدل: ٤) وتپه، ډانگه، شنډی، بند، ډکه، د سيل د اوبو د گرځولو لپاره له کانو، ډبرو او لښتو څخه جوړ شوی دېوال.

**پرشاتگ** (paršātág) نر.م. شاتگ، عقب نشيني، برگشت، ارتجاع.

**پرشاتمبونه** (paršātambawána) ښځ.م. شاته تمبونه.

**پرشی** (páršay) نر.م. درشل، تادري، ځيرزيږی، د دروازې د چوکاټ لاندينی لرگی.

**پرشي** (párši) نر.م. يو ډول مشهور گل دی.

**پرشېدل** (prašedál) مص. ل. پرنجېدل، انتروسی کول، ترينجېدل، پرجېدل.

**پرښته** (prıṣtá) ښځ.م. (ج. پرښتې) ملايکه، ملائيکه، ملکه، فرشته، پرشته، پريشته.

**پرښه** (parṣá) ښځ.م (ج. پرښې) پرشه، تخته سنگه، د غره د تيږو لړ.

**پرغاړه** (pargāṛa) ق. ۱) په ذمه، په غاړه، منلی، قبول، په باندې: ۲) په غاړه کړی، اغوستی: ۳) پرې تپل، پرې وراړول.

**پرغرک** (pargarák) نر.م. ۱) ډسه، تنگبی، وښه، کښه، ډاسه، د پېړۍ په سر کې د بار د تړلو لپاره لرگی.

**پرغز** (pargáz) نر.م. جگجانی، د اوسپنې تېرغشی چې شاته يې ښکې تومبلی وي: ۲) قهر، غوسه: ۳) د ناروغ د بېهوښۍ حالت: ٤) ص. نر.م. له چل څخه ډک، دوکه باز.

**پرغزناک** (pargaznák) ص. نر.م. غوسه ناک، قهرژلی، قهرېدلی، عصباني.

**پرغزي** (pargázi) ص. نب. ۱) د غوسې حالت، قهرېدلی: ۲) بې ترتيبه: ۳) بېهوښونکی.

**پرغو** (pargū́) نر.م. سری، پلغو، پرغو، پړويغی، کولبې لپاره په غاړه شوي غوايان، سيلی.

**پرک** (parák) نر.م. هغه گونځې گونځې توکرچې د کميس په لمن باندې گنډل شوی وي.

**پرکار** [۱] (parkā́r) نر.م. (ج. پرکارونه) فلزي يا پلاستيکي هندسي آله ده.

**پرکار** [۲] (purkā́r) ص. نر.م.ج. فعال، تکړه، ډېر کارکوونکی، کارکن، پرکاره.

**پرکال** (parkā́l) ص. نر.م. ۱) بېخوده، سست، لټ، بېکاره: ۲) مړتت، کاهل.

**پرکالتيا** (parkāltyā́) ښځ. م. سستي، بېکاري، لټي، کاهلي، تنبلي.

**پرکالېدل** (parkāledál) مص. ل. ۱) سستېدل، کاهلېدل، لټېدل: ۲) گنگسېدل، ستړی کېدل.

**پرکټی** (parkáṭay) نر.م. (ج. پرکټي، پرکټيان) ۱) پرگټی، برگټی، د دويم واده په وخت کې په مور پسې راغلی د بل پلار بچی: ۲) ص. نر.م. شيطان، بدمعاش، ورانکاری هلک.

**پرکټۍ** (parkaṭáy) ښځ.م. د پرکټي مؤنثه بڼه، برگټۍ: و گ. پرکټی.

**پرکښ** (parkáṣ) نر.م. ښه کش شوي لينده.

**پرکن** (parkán) نر.م. (ج. پرکنونه) د بهلولو بريد يا پوله، د جلا کولو حد، د حد برجی (ثلی).

**پرکوټ** (parkū́ṭ) ص. نر.م. ۱) بې وسه، خوار، بې وزله؛ ۲) اړ، حاجت مند، محتاج.

**پرکوټ کول** (parkūṭkawā́l) مص. مت. ۱) بې کاره کول. د کار جوګه نه ګڼل؛ ۲) اړ کول.

**پرکی** (pạ́rkay) نر.م. پرپرکی، لولکی، پتنګ، پتن، پروانه، ککی، سترګک، ډيبی.

**پرګانه** (pargānā́) ص. نب. خور، خپور، خوروور، تاش په تاش، تيت پرک.

**پرګانې** (pargā́ne) ښځ.م. هغه شولې چې بې له بزغلي کرلې کېږي يعنی تخم کرل کېږي.

**پرګنه** (pargána) ښځ.م. (ج. پرګنې) ۱) کورنۍ، خېل، پرګه، کورمه؛ ۲) علاقه، سيمه.

**پرګنيز** (pargániz) نر.م. ولسي، وګړيز، وګړنی.

**پرګونډوکول** (pargoṇḍokawā́l) مص. مت. اېلول، ماتول.

**پرګول** (purgól) نر.م. ۱) د پېغلتوب د عصمت پرده، دبکارت پرده ۲) ص. ښځ.م. بکره پېغله.

**پرګويه** (purgoyá) ص. نب. ۱) دريابي شاعر، هغه شاعر چې ډېر شعرونه وايي؛ ۲) باتو، لاپو؛ ۳) کړتن، کړوتو.

**پرګويي** (purgóyi) ښځ.م. غورې، کړتې، لاپې، شاپې، ډېرې خبرې.

**پرګه** (pargá) ښځ.م. (ج. پرګې) خېلخانه، پرګنه، کورنۍ، کورمه، خپل خپلوان.

**پرګی** (párgay) نر.م. پيرګی، پورګی، د ځېږی د ونې مېوه.

**پرله اوښتل** (parlaāwaṣtál) مص.ل. بازيګره خوړل، اوړېدل، اوښتل، سرکوټړی خوړل، سر په ځنګه اوښتل.

**پرله باندې** (parlabā́nde) ق. يو پر بل، سر پر سر، يو د بل د پاسه، لاندې باندې.

**پرله پسې** (parlápse) ق. يو پر بل پسې، په يو مخ، مسلسل، متواتر، يو بل پسې.

**پرله پورې** (parlapóre) ص. نب. نښتي، جوخت، ځنګ په ځنګ، وربورې، ورپسې، نښتی.

**پرله وهلی** (parlawahálay) نر.م. مضبوط، غښتلی، قوي، غټ، چاغ، ځورب، مزی.

**پرمال** (parmā́l) نر.م. ګونډې مال، سرمال، د غنمو د ګونډې غوبل.

**پرمان** (parmā́n) نر.م. حکم، فرمان، امر، په رسمي چارو کې هغه ليکلی سند او امر چې د دولت له ډېر لوړ مقام څخه صادرېږي.

**پرمخ** (parmáx) ق. ۱) په مخ باندې؛ ۲) وړاندې، مخکې؛ ۳) بېخي، له يوه سره، ټول.

**پرمختګ** (parmaxtág) نر.م. پرمختيا، وړاندې تګ، پېشرفت، ترقي.

**پرمختلی** (parmaxtálay) نر.م. پرمختللی.

**پرمختيايي** (parmaxtyā́yi) ص. انکشافی، ارتقايي، مخ پرانکشاف، مخ پر وده.

**پرمخيون** (parmaxyū́n) نر.م. پرمختلون، پرمختګ، وړاندې تګ.

**پرمېخي** (parméxi) ښځ.م. ۱) خوبولی، پرمېښی؛ ۲) ګډوډ خوب؛ ۳) پرېشاني.

**پرمېړه** (parmeṛá) ښځ.م. پوځکی، پرېړه، مرخېړی، ګوځی، ستوری، ورخېړی.

**پرمېښی** (parmeṣáy) ښځ.م. ځربه غوا، چاغه غوا، تياره غوا، مزې غوا.

**پرنا** (parnā́) ص. نب ۱) نښه، خمار؛ ۲) فکرمند، حيران، اندېښمن.

**پرناله** (parnālá) ښځ.م. تری، ناوه، په بام کې د باران د وتو لاره.

**پرناوړی** (parnāwáṛay) ص. نر.م. ۱) نېشه شوی، نېشه، خمار؛ ۲) فکرمند، اندېښمن.

**پرنج** (pránj) نر.م. ۱) پرنجی، انتروشی، انتوسی، د پرنجی اواز؛ ۲) دوگانه، جالی، گونډه، د تاک هغه اوږده لښته چې سریې په خاورو کې ښخ کړي او بیا یې د ژمي په آخر کې جلا کوي.

**پرنجل** (pranjә́l) مص. ل. پرنجېدل، پرچېدل، پرنجی کول، انړی کول، انتوسی کول.

**پرنجی** (pránjay) نر.م. پرچی، انتوسی، پرنځی.

**پرنجېدل** (pranjedә́l) مص. ل. پرچېدل، پرنځېدل، انړېدل، انتوسېدل، پرنجی کول.

**پرنچ** (prә́nč) نر.م. پرنځ، پرنج، د پرنجي غږ، د انتوسي اواز، د انړي غږ.

**پرنځ** (prә́nǯ) نر.م. وگ. پرنچ.

**پرند** (paránd) نر.م. څادر، پړونی.

**پرنډ** (prә́nḍ) ص. نر.م. ۱) وراني شوې شیدې، خیدک شوې شیدې؛ ۲) پرن، پرم؛ ۳) لخته شوې وینه؛ ٤) ص. نر.م. منجمد، کلک.

**پرنډتوب** (pranḍtób) نر.م ۱) د شیدو کلکېدنه، د شیدو تخه کېدنه؛ ۲) د وینې لخته کېدنه.

**پرنډېدل** (pranḍedә́l) مص.ل. ۱) تومنه کېدل، مایه کېدل؛ ۲) کلکېدل؛ ۳) وینې لخته کېدل.

**پرنسیپ** (prә́nsip) نر.م. اصل، مبدأ، پیل، مایه، ماده، وضع، قاعده، اساسي موضوع، د اخلاقو او چلند قواعد، عقیده، مسلک.

**پرنۍ** (pә́rnəi) ښځ.م. فریني، پیریني، یو خواره دی چې له شیدو او د وریجو له اوړو څخه تیارېږي.

**پرنی** (pә́ṛnay) نر.م. (پرني) پوړنی، سپېره او خاکي رنگه بوټی دی.

**پرو**(۱) (parū́) نر.م. برو، تود باد، توده هوا، تندباد.

**پرو**(۲) (purū́) ص. نب. خوشې، ارزه برزه، فضول.

**پروا** (parwā́) ښځ.م. (ج. پرواوې) ۱) خیال، اند، فکر، لحاظ، خاطر؛ ۲) دار، وېره، باک.

**پروانگي** (parwā́ngi) ښځ.م. سپارښتنه، هدایت، سپارښت.

**پروانه** (parwāná) ښځ.م. (ج. پروانې) ۱) پتنگ، پتڼ، اورپښت؛ ۲) اجازه نامه؛ ۲) عاشق.

**پروپاگند** (prupāgánd) نر.م. مشهور کول، ریکلامول، د شهرت ورکولو عمل، د چا تعریف یا غندنه، له حقیقته لرې خبرې.

**پروت** (prót) ص. نر.م. (ج. پراته) ۱) ملاست، غځېدلی؛ ۲) ایښی، کېښودلی؛ ۳) بېکاره، بې وجهې، سست؛ ٤) موجود، په کې.

**پروتوالی** (protwā́lay) نر.م. ۱) ملاسته، غځېدنه؛ ۲) عرض، پلنوالی.

**پروته** (protá) ښځ.م. ښېرا، بد دوعايي.

**پروټ** (porwáṭ) ص. نر.م. چاغ، غټ پټ، څورب، غښتلی، مزی، قوي.

**پروټتوب** (parwaṭṭób) نر.م. چاغي، چاغوالی، مزیتوب، زورورتوب.

**پروړ** (proṛ) نر.م. بوس، پروړه، پوړ، پروړی، پلاله، د غنمو او اوربشو سپین بوس.

**پروړوالا** (proṛwālā́) ص. نب. بوس خرڅوونکی، پروړ خرڅوونکی.

**پروړه** (proṛá) ښځ.م. (ج. پروړې) ۱) بوس؛ ۲) د شولو وانښه؛ ۳) نا میده شوې وانښه.

**پروزی** (prózay) نر.م. غلبېل، چنوونی، چانوونی، پرویزی.

**پروژه** (prožá) ښځ.م. (ج. پروژې) ۱) طرح، نقشه، پروجکټ، پروگرام؛ ۲) قصد، نیت.

**پروسږ** (parosáẓ) ق. تېر کال، پروسږ کال.

**پروسږ کال** (prosaẓkā́l) ق. پروسکال، پروسږ، تېر کال، رومبی کال.

**پروسږن** (parosaẓán) ص. نـر.م. تېر کال، پروسږنی، پروسکلنی، پروسکلن.

**پروسس** (prū́sɪs) نـر.م. عملیه، پروسه، تعامل، مرحله.

**پروسه** (prosá) ښځ.م. (ج. پروسې) بهیر، پروسس، عمل، مرحله، عملیه، تعامل.

**پروف** (prū́f) نـر.م. ۱) خاکه، مسوده؛ ۲) چاپ شوی کاغذ له اصلي متن سره کتل او تېروتنې یې سمول؛ ۳) حل، ثبوت، اثبات.

**پروفیسر** (profisár) نـر.م. پوهاند، هغه څوک چې لوړ علمي مقام ولري.

**پروګرام** (prográ́m) نر.م. ۱) طرح، پروژه، د یو کار د مراحلو ټاکل؛ ۲) کړنلاره؛ ۳) تعلیمي او درسي نصاب.

**پرول** (parawál) مص. مت. ۱) څغلول، منډه ورکول ۲) پارول؛ ۳) څه شی د غلا په ډول تښتول؛ ٤) خوځول؛ ٥) څه شی په تاو لرې غورځول.

**پرول دودی** (prūldóday) نر.م. دلالي، کمېشن.

**پرولوګ** (prológ) نر.م. پرولاګ، سریزه، مقدمه، پیل؛ د کتاب او نورو سریزه.

**پرون** (parū́n) ق. تېره ورځ یا پرون شپه، پرون ورځ، پرون شپه.

**پرونه** (parawána) ښځ.م. ۱) څغلونه، په منډه کونه؛ ۲) د غلا په ډول تښتونه.

**پروني** (parū́nay) ص. نر.م. د پرون د ورځې، د تېرې ورځې؛ په تېرې ورځې پورې مربوط.

**پروېزی** (parwézay) نر.م. (ج. پروېزي) پروزی، چڼوونی، د اوړو غلبېل، چاڼ.

**پروین** (párwin) نر.م. پرې وونې، پیروني، د ظفر ستوري، ژمبک ستوری.

**پره** (pará) ښځ. م. (ج. پرې) ۱) د ژرندې د څرخ پل یا اړې غابښې؛ ۲) د غره تېره څوکه؛ ۳) پلو، مخه؛ ٤) ډله؛ ٥) پلوي، ننګه؛ ٦) جګړه، د خپګان ښکاره کول، نوغې ورسول؛ ۷) د بېل (یوم) څنډه؛ ۸) پلټنه، لټون؛ ۹) تفتیش.

**پرهار** (parhā́r) نـر.م. ۱) ټپ، زخم، پرهر؛ ۲) د الوتلو په وخت د مرغانو د وزرونو اواز.

**پرهار پاڼه** (parhārpāṇá) ښځ.م. (ج. پرهارپاڼې) د بارتنګ پاڼه، بارتنګ، ګزک پاڼه.

**پرهارتون** (parhārtū́n) نـر.م. عملیات خوانه، جراح خونه، د جراحي ځای.

**پرهار ژلی** (parhārẑálay) ص. نـر.م. پرهارجن، پرهاري، ټپي، زخمي، مجروح، پیروژلی.

**پره جنبه** (parajanbá) ښځ.م. (ج. پرې جنبې) ډله بازي، ګوند بازي، ګوندیماري، ګوندي.

**پره دار** (paradā́r) ص. نر.م. مل، ملګری.

**پره هی** (paráhay) نر.م. جبل، د اوسپنې کلک او مضبوط سیخ چې تیږې پرې باسي.

**پرهېز** (párhez) نـر.م. ۱) ځان ساتنه؛ ۲) د کتو ورونکو حیواناتو د کتې هغه ځای چې د زخم په اندازه غوځ یا څیرې شوی وي.

**پرهېزانه** (parhezāná) ښځ.م. پرېزانه، د پرهېز خواړه، د ناروغ ځانګړي خواړه.

**پرهېزګار** (parhezgā́r) ص. نـر.م. متقي، تقوا دار، له بدو ځان ساتونکی، پرهېز کوونکی.

**پرې** (pre) اد. ۱) باندې، پر، ورباندې، په، دپاسه؛ ۲) مخ. مختاړی دی لکه: پرېوتل او پرېښودل؛ ۳) ص. نب. غوځ، قطع.

**پری** (paráy) ښځ.م. بنګه، دل، د یبم راکښل، اینجه، مانجه، پال کش، هغه چاری او ښهل چې په دوو کسانو راښکل کېږي.

**پریال** (paryā́l) نر.م. ۱) یو ډول کېږدی، یو ډول خېمه؛ ۲) پرده، پاریال، هغه پرده چې یوه کوټه په دوو برخو ویشي.

**پرې ایستل** (preistál) مص.مت. ۱) څملول، پرې باسل، غورځول، پرځول؛ ۲) په ځای (بستره) کې بیده کول یا څملول.

**پرې ایښکه** (preiṣáka) ښځ.م. و ګ. پرېښکه.

**پرې باسل** (prebāsál) مص.مت ۱) پرځول، اړتاوول ښکوروول؛ ۲) تریل، کښسته ګوزارل، لاندې اچول؛ ۳) ورباندې اچول؛ ٤) بیده کول.

**پرېبدل** (parebdál) مص.مت. پرېښل، وهل، ښبل، ټکول، ډبول.

**پریت** (prit) نر.م. شره، حیا.

**پرېټ** (paréṭ) نر.م. پرېډ، رسم ګذشت، عسکري تعلیم قدم؛ ۲) د سرو ښتان په خاص ترتیب جوړول؛ ۳) پټ پلیټ، په کالي کې بخی کول.

**پریچ** (preč) نر.م. (ج. پریچونه) پسرچ، نالبکی، ریکیبی، بشقاب، نعلبکی.

**پریځر** (precár) ق. څنګزن، څنګځن، یوې خواته، بهل، یوې ډډې ته، ښلګلوت، ګوښې ته.

**پرېدار** (predā́r) ص نر.م. و ګ. پېره دار.

**پرېدل** [۱] (predál) مص.مت. پرېښودل، پرېښل، پرېږدل.

**پرېدل** [۲] (paredál) مص.ل. ۱) دالوتونکو د وزرو اواز پورته کېدل؛ ۲) څغلېدل، په منډه کېدل، څغاستل؛ ۳) د یوه شي په غلا تښتول کېدل.

**پرېړ** (preṛ) ص. نر.م.ج. ۱) عوټ، پیړ، پنډ؛ ۲) په غوښو پټ، چاغ، مزی، شلنډ.

**پرېړوالی** (preṛwā́lay) نر.م. پېړوالی، پنډوالی، غټوالی، پرېړتوب، پرېړتیا.

**پرېړول** (preṛawā́l) مص. مت. ۱) پنډول، غټول، پېړول، ضخامت زیاتول؛ ۲) مزی کول.

**پرېړه** (preṛá) ښځ.م. (ج. پرېړې) ۱) غوټه، پنډه، پېړه؛ ۲) و ګ. پروړه.

**پرېړی** (preṛáy) ښځ.م. کربکه، تره‌ته، د غنمو او غلې د ساتلو لپاره له بوزې څخه جوړ شوی شی (کندو ډوله).

**پرېړېدل** (preṛedál) مص. ل. پنډېدل، پېړېدل، غټېدل، ضخامت زیاتېدل.

**پرېز** (parez) نر.م. (ج. پرېزونه) و ګ. پرهېز.

**پرېژه** (preẓá) ښځ.م. طلاق.

**پرېږدل** (preẓdál) مص. مت. و ګ. پرېښودل.

**پرېږه** (preẓá) ص. نب. ۱) وچکالي، کاختي وهلی، قحطي ځپلی؛ ۲) د غلې کمبود، قحطي.

**پرېسه** (prisá) ص. نب. ۱) ښکاره او وزګاره ښځه؛ ۲) وېربدلی، ډاربدلی، ترهبدلی.

**پرېشان** (prešā́n) ص. نر.م. ۱) خفه، خپه، دلګیر، سرګردان؛ ۲) خوار، بې وزلی؛ ۳) خورور، وېر.

**پرېښته** (pareṣtá) ښځ.م. (ج. پرېښتې) فرشته، ملایکه، پرښته.

**پرېښکه** (preṣáka) ص. ښځ.م. (ج. پرېښکې) طلاقه شوې، پرېښوولې، پرې ایښې.

**پرېښودل** (preṣodál) مص. مت. ۱) پرېږدل، پرېښول؛ ۲) خلاصول، خوشې کول؛ ۳) روستو پاتې کول؛ ٤) لاس اخیستل؛ ٥) طلاقول.

**پرېښون** (reṣū́n) نر.م. جوته، لیښوین، سرویغی، پسمانده، پاتې شونی خوراک.

**پرېښونی** (preṣū́nay) نر.م. پسمانده، پاتې شونی.

**پرېښوول** (preṣowā́l) مص. مت. و ګ. پرېښودل.

**پرېښې** ( préṣay ) مف. نر.م. ۱) پرې ېښې، پرېښودلې، خلاص کړې؛ ۲) پاتې کړې.

**پرېکړون** ( prekṛún ) نر.م. فیصله، پرېکړې، پرېکړه، پرېکون، پرېکوڼ، لنډون.

**پرېکړه** ( prékṛa ) ښځ.م. ۱) فیصله، پرېکړون، غوڅه؛ ۲) پرېکون، لنډون؛ ۳) کړه وړه، څېره؛ ۴) د زړه سوځېدو وړ څېره.

**پرېکړه لیک** ( prekṛalík ) نر.م. فیصله لیک، فیصله نامه، قطعنامه.

**پرېکړی** ( prekáṛay ) مف. نر.م. ۱) غوڅ شوی، پرې شوی؛ ۲) فیصله شوی؛ ۳) ادا شوی، ادا کړی، خلاص کړی.

**پرېکول** ( prekawál ) مص. مت. ۱) شلول، ځیرې کول؛ ۲) غوڅول؛ ۳) فیصله کول؛ ۴) کیندل.

**پرېکون** ( prekún ) نر.م. ۱) لنډون، پرېکړون، د واده ورکولو فیصله؛ ۲) بېلتون، بېلوالی؛ ۳) پرېکړه، فیصله؛ ۴) غوڅونه؛ ۵) اختلاف.

**پرېکونه** ( prekawána ) ښځ.م. غوڅونه، لنډونه.

**پرېکوڼ** ( prekuṇ ) نر.م. ۱) سرتړونی، سربند؛ ۲) بچوکی؛ ۳) انګړ، د کور او حویلۍ غولی.

**پرېکه** ( préka ) ښځ.م. ۱) و.ګ. پرېکړه؛ ۲) ف. مطلق امر (غوڅ کړه!).

**پرېکېدل** ( prekedál ) مص. مت. ۱) غوڅېدل، قطع کېدل؛ ۲) شلېدل، ځیرې کېدل؛ ۳) فیصله کېدل، ختمېدل؛ ۴) کیندل، کنستل.

**پریم** ( prim ) نر.م. (ج. پریمونه) د نس پرده، برنڅ، د خېټې پرده، پرین.

**پرېم** ( prem ) نر.م ۱) مینه، محبت؛ ۲) فریم، چوکاټ حلقه، دعینکو چوکاټ؛ ۲) ډانچه.

**پرېمان** ( premā́n ) ص. نر.م. ۱) پرېمانه، ډېر زیات؛ ۲) اباد، ښېرازه.

**پرېماني** ( premāní ) ښځ.م. زیتوالی، بروالی.

**پرېمشتل** ( premaṣtúl ) مص. ل. پرېمل، مېشت کېدل، مشتېدل، اوسېدل، مېشته کېدل.

**پرېمل** ( premál ) مص. ل ۱) اوسېدل، مېشت کېدل، پرېمشتل؛ ۲) مص. مت. ځای نیول، قبضه کول لاس ته راوستل، لاندې کول.

**پرېمن** ( premán ) ق. په ډاډه، په اطمینان، په تسل، په مزه، په خوند، په خوښی.

**پرېمینځل** ( preminźə́l ) مص. مت. ۱) مینځل، وینځل، پرېولل؛ ۲) لمبول.

**پرین** ( prin ) نر.م. ۱) پریم، دنس پرده، دخېټې پرده ۲) د کوچنیانو یو ډول لوبه.

**پرینځل** ( prinźál ) مص. مت. و.ګ. پرېمینځل.

**پریند** ( prind ) نر.م. پرین، پریم، برنڅ، د نس پرده.

**پرېڼ** ( paryaṇ ) نر.م ۱) بندوبست، سرشته، تنظیم؛ ۲) جوړښت، سلا، مشوره.

**پرېڼی** ( paryaṇáy ) فا. نر.م. ۱) ترتیبوونکی، سرشته کوونکی؛ ۲) پوه ، هنرمند.

**پرېو** ( prew ) نر.م. مرید، منونکی، دچا په پله پسې تلونکی، تعقیبوونکی.

**پرېوان** ( prewā́n ) ص. نر.م. و.ګ. پرېمان.

**پرېواني** ( prewāní ) ښځ.م. و.ګ. پرېماني.

**پرېوت** ( prewát ) نر.م. لوېدیځ، مغرب، لمر پرېواته.

**پرېوتل** ( prewatál ) مص. ل. ۱) څملاستل، غځېدل، ویده کېدل؛ ۲) غورځېدل، راګوزارېدل، لوېدل؛ ۳) ډوبېدل؛ ۴) دېره کېدل؛ ۵) یرغل کول؛ ۶) پاتې توېدل؛ ۷) نړېدل؛ ۸) په سوداګرۍ کې تاوان؛ ۹) ناکامېدل؛ ۱۰) ناروغېدل.

**پرېولل** ( prewlál ) مص. مت. و.ګ. پرېمنځل.

**پرېولنه** ( prewlána ) نر.م. پرېولنګ، پرېمینځنه، پاکونه، وینځنه، مینځنه.

**پرېوينځل** (prewinǰál) مص. مت. و ګ. پرېمنځل

**پرېياسته** (preyāstá) نر. ج. ۱) ځملونه، ويده کونه؛ ۲) راکښته کونه، پرېباسنه، راکوزونه؛ ۳) غځونه، اوږدونه، کښېکونه.

**پرېيستل** (preistə́l) مص. مت. ۱) پرېباسل، غځول، ويده کول؛ ۲) راکښته کول، راکوزول، راغورځول، رااچول.

**پرېيښتل** (preiṣtə́l) مص. مت. پرېيستل.

**پرېيښی** (preiṣáy) مف. نر. م. (ج. پرېيښي) خوشې شوی، پرېښودل شوی، ترک شوی، ازاد شوی، خلاص شوی، ترک کړی.

**پړ** (pə́ṛ) ص. نر. م. (ج. پړه) ۱) ملامت، ګرم؛ ۲) مغلوب؛ ۳) بند؛ ٤) نر. م. کانيزه ځمکه؛ ٥) قمارخانه؛ ٦) پُل.

**پړاپه** (pṛāpá) ښځ. م. (ج. پړاپې) ببغه، ببوغه، کورکوړۍ، کرکوړۍ، کنميره، کوړکوته.

**پړاته** (paṛātá) ښځ. م. (ج. پړاتې) و ګ. پراته.

**پړاخ** (pṛā́x) ص. نرم. ج. پړاخ، ارت، پلن، بهرته.

**پړاخ پزی** (pṛāxpázay) ص. نر. م. پلن پزی، د پلنې پوزې خاوند، پوزور، پيت پزی.

**پړاس** (pṛā́s) نر. م. کړس، تک، پړک، ښپېړه.

**پړاکی** (pṛā́kay) نر. م. (ج. پړاکي) بدخويه سړی، قهرجن سړی، بې حوصلې سړی.

**پړان پس** (pṛānpás) نر. م. کرپش، کته پيش، ګوتړک.

**پړانګ** (pṛā́ng) نر. م. يو ځيرونکی ځناور دی.

**پړانګ پيش** (pṛāngpíš) نر. م. غرنی پش، پيشو پړانګ، نيمچی، سارانی پيشکه.

**پړانګه** (paṛāngá) ښځ. م. ۱) خرخوړی، ځيرانګه، چيروه، د زړې توتې چيرۍ؛ ۲) کرښه، ليکه، خط؛ ۳) د پړانګ مونث.

**پړانه وړانه** (pṛānawṛāná) ښځ. م. ۱) پېره وړه، ګرمه ناګرمه، حق ناحق؛ ۲) شرط، جواري.

**پړاو** (paṛā́w) نر. م (ج. پړاوونه) رباط، منزل، تکانه، تېسن، تم ځای.

**پړپوس** (paṛpū́s) نر. م. (ج. پړپوسونه) ۱) سړی، پپوس؛ ۲) بېکاره سړی؛ ۳) دووس، دله.

**پړت** (pṛát) نر. م. ۱) برستن، شيرک؛ ۲) په دام کې د نښتې مرغۍ د وزرود ښورېدلو اواز، پرتېدل.

**پړتاوول** (paṛtāwawə́l) مص. مت. نسکورول، پرځول، راڅملول، راګوزارول، راغورځول.

**پړتاوېدل** (paṛtāwedə́l) مص. ل. غورځېدل، ګوزارېدل، نسکورېدل، پرځېدل.

**پړتوب** (paṛtób) نر. م ۱) پړتيا، ملامتيا، پړوالی، ګرمتيا؛ ۲) مغلوبيت، مغلوبېدنه.

**پړتوګ** (paṛtóg) نر. م. (ج. پړتوګونه) پرتوګ.

**پړته** (paṛtá) ښځ. م. ۱) پړکه، لينډکۍ، کيکړۍ، د مرغيو د نيولو اله؛ ۲) چينډښتکرو.

**پړتيا** (paṛtyā́) ښځ. م. (ج. پړتياوې) ګرمتيا، ملامتيا، ګرموالی، پړوالی.

**پړتېدل** (pṛatedə́l) نر. م. پورته پورته غورځېدل.

**پړچتۍ** (paṛčátəy) ښځ. م. رېکی، رپ، چنۍ، په دېوال کې د لوښي اېښودلو ځای، تاقچه.

**پړخ** (pṛáx) نر. م. تک، تق، پړک، پړق، د تمانچې ډزا او د ښپېړې اواز.

**پړده** (paṛdá) ښځ. م. (ج. پړدې) و ګ. پرده.

**پړده** (puṛdá) ص. نب. ۱) مسوول، ذمه وار؛ ۲) باوري، يقيني.

**پرده پوښ** (paṛdapóṣ) نر. م. رازساتونکی، پرده ساتونکی، معتمد، عيب پټوونکی.

**پړسبن** (pṛasabán) ص. نر. م. سست، پړسېدلی، پړسپن، له باده ډک، پړسند، پوسن، پړسوبن.

**پړسمن** (prasmán) ص. نر.م. ۱) پړسېدلی، ډډ شوی؛ ۲) پوست، سست؛ ۳) نابوده، بې هېڅ، بې کاره؛ ٤) سور، ناراست، لټ، تنبل.

**پړسنده** (parsánda) ص. نب. ۱) پړسېدلی، دوسه، ډډ؛ ۲) پړسولی، له غوسې نه ډډ؛ ۳) وروست.

**پړسوب** (parsób) نر.م. پاړسوب، تنډوالی، ډډوالی، ډډون، پړسېدنه.

**پړسوبن** (parsobán) ص. نر.م. ډډ شوی، پړسېدلی.

**پړسول**(۱) (parsawál) مص. مت. ۱) ډډول، تنډول، پاکول؛ ۲) قهرول؛ ۳) بلاربول؛ ٤) بنه وهل.

**پړسول**(۲) (prasawál) مص. مت. ۱) پړکول، په څپېړه وهل؛ ۲) چول، چاودل.

**پړسونګا** (parsūngā) نر.م. پړسېدلی، خېټور.

**پړسونګی** (parsūngay) نر.م. پړسېدلی سړی، ډډ بډ سړی.

**پړسېدل**(۱) (parsedál) مص ل ۱) ډډېدل، تنډېدل؛ ۲) قهرېدل، غوسه کېدل؛ ۳) حامله کېدل.

**پړسېدل**(۲) (prasedál) مص. ل. ۱) پړقېدل، وهل کېدل؛ ۲) چاودېدل، درز کېدل.

**پړغشه** (parğáša) ښځ.م (ج. پړغشې) ګنده، بګه، بډه، لال ګنده.

**پړک**(۱) (prák) نر.م. ۱) ټک، څپېړه؛ ۲) ځلا، ځل، د رڼا څریکه؛ ۳) د سترګو په رپ کې، لږ وخت.

**پړک**(۲) (park) نر.م. ۱) د خلکو یوه وړوکې ډله؛ ۲) د پسو وړه رمه؛ ۳) رېږدېدا؛ ٤) همزولتیا؛ ٥) د پېیلو مرغلرو لړ؛ ٦) دلمنځې لړګی؛ ۷) د دم د چړې د تېره کولو څرمن.

**پړکا** (prakā) ښځ.م ۱) ځلا، رڼا، برېښنا؛ ۲) ټکا، تقا، د څپېړو اواز.

**پړکمشر** (parkmašár) نر.م. (ج. پړک مشران) بریدګی، خورد ضابط.

**پړکول** (prakawál) مص. مت. ۱) پړقول، ځلول، پرېښول؛ ۲) وهل؛ ۳) آواز ایستل، چکچک.

**پړکه** (parká) ښځ.م. (ج. پړکې) پتکه، کېکړی، د مرغیو د نیولو اله، لومه یا بېټلی.

**پړکهار** (prakahār) نر.ج. ټکهار، تقهار.

**پړکی** (párkay) نر.م. ۱) پنډۍ، لینګی، ساق، لنګی؛ ۲) د ښکار بوټی، تور ګاړ.

**پړکۍ** (parkáy) ښځ.م. ج. بتکۍ، پړکه، ګزکه، د مرغیو د نیولو آله.

**پړکېدل** (prakedál) مص.مت ۱) ځلېدل، برېښېدل، پړقېدل، ځلغېدل؛ ۲) مص.ل. رېږدېدل، رپېدل، لړزېدل، ترېدل، پړېدل، دګېدل.

**پړم** (prám) ص. نر.م. و ګ. پړن.

**پړمبۍ** (prambáy) ښځ.م. ج. ۱) پمبرۍ، تناکه، پولۍ؛ ۲) داوبو دسر پوکانۍ، ډومبک، حباب.

**پړمخ** (parmáx) ق. پړمخ پرېوتی، پړمخ پروت، نسکور، پړمخې، اپوته.

**پړمخې** (parmáxe) ق. پړمخ، په مخ پرېوتی، پړمخ پروت، نسکور پروت، اپوته پروت.

**پړمخی** (parmáxay) نر.م ۱) برغولی، د کتنوې خاورین سرپوښ؛ ۲) ص. نر.م. اپوته.

**پړنګ** (prāng) نر.م. ج. ۱) د ژړا اول غږ، برېنګ؛ ۲) ص. نر.م. بې جرئته؛ ۳) جذام، خراړه، یو ډول بده ساري ناروغي ده.

**پړنګا** (prangā) ښځ.م. (ج. پړنګاوې) ۱) ژړا، پړنګ؛ ۲) ټنګا، پنګا، چنګا، ډنګا.

**پړنګن** (prangán) ص. نر.م. ژړن، چنګن، برنګن، پړنګن.

**پړنګول** (prangawál) مص. مت. ژړول، برنګول.

**پړنګی** (prángay) مف. نر.م. (ج. پړنګي) په خوراړه اخته، خراړي نیولی، جذام نیولی.

پړنگېدل (prangedə́l) مص. ل ۱) ژړېدل، جړېدل، بړنگېدل، پړنگېدل.

پړنه (prána) ښځ. م (ج. پړنې) ملامتیا، ملامتوالی، پړه.

پړنه وړنه (pranawrána) ښځ. م. پړه گالل، گرمه منل، ملامتیا منل.

پړوالی (parwā́lay) نـر. م. گـرمـوالی، پړتوب، ملامتوالی، گرمتوب.

پړوپی (prū́pay) نر. م. (ج. پـړوپي) ۱) څلـورمـه برخه، کوروی، پاو، چارک؛ ۲) ښځ. م. د وزن یوه پیمانه، د ووړي شپاړسمه برخه.

پړوستي (prósti) ښځ. م. ۱) پله، پلی، غـوړگی؛ ۲) پولی، د جوارو پولی.

پړوکی[1] (prūkáy) نر. م. (ج. پړوکی) ۱) لـړ؛ ۲) مصرع، د شعر برخه؛ ۳) غړ ناره؛ ٤) توته، د لرگي توته.

پړوکی[2] (parū́kay) نـر. م. ۱) وړه رمه، د پړک تصغیر؛ ۲) کندی، وړه بیاسته، لنډه پړی.

پړوکی پړوکی (prokayprókay) ص. نـر. م. لړلړ، توتې توتې، برخې برخې.

پړول (parawә́l) مص. مت. مـلامتـول، گرمول، مغلوبول.

پړومبه (prombá) ښځ. م. (ج. پړومبې) چیچړنه، چیچړه، ډنگره غوښه، خرابه غوښه.

پړومبې (prómbe) ښځ. م. د پنېر یا مستو شنې اوبه، د پوڅې شنې اوبه.

پړوند (parwánd) ص. نر. م. غښتلی، قوي، کلک، ټینگ، پلوند، مضبوط.

پړونی (parū́nay) نـر. م. (ج. پـړوني) زړوکی، ټیکری، پړونی (د ښځو څادر).

پړه[5] (prá) ښځ. م. ۱) ملامتي، گـرمتیـا، مغلوبوالی؛ ۲) ص. ښـځ. م. مـلامتـه، د پړ مؤنث؛ ۳) نر. م. ج. د پړ جمع.

پړه تکې (pratáke) ښځ. م. ۱) لتکې، لغتې وهنې، پوناکې؛ ۲) لوڅې پوڅې.

پړی (páray) ص. نـر. م. (ج. پړیان) ۱) جـوارگـر؛ ۲) د قمار خانې مشر؛ ۳) نر. م. بیاسته، رسی.

پړۍ (paráy) ښځ. م. ۱) د کانو، گټو داسې اېښودل چې لس لس فوټه یې اوږدوالی او پلنوالی او یو فوټ یې جګوالی وي؛ ۲) لرگي، تیرې او بوجۍ چې سر په سر کېښودل شي.

پړۍ پړۍ (parayparáy) ق. کتار کـتـار، قـطـار قطـار، سر په سر (بوجۍ او لرگي).

پړیت (prit) ص. نر. م. ۱) له ډاره غلی او پټ شوی؛ ۲) پیت، چیت؛ ۳) نر. م. د الوتلو په وخت کې د مرغ د وزرونو اواز.

پړیخ (prix) ص. نـر. م. ۱) چیت، پیت، پـړیت؛ ۲) جینگ، چینگ، چینگ خولی.

پړیخ پزی (prixpázay) ص، نر. م. چیت پـوزی، پلن پزی، جیت پزی، پیت پزی.

پړېدل (paredә́l) مص. ل. ۱) ملامتېدل، گرمېدل، ۲) مغلوبېدل؛ ۳) بې ځایه غړېدل؛ ٤) لړزېدل.

پړیس (pris) ص. نر. م. پلن، پړیخ، بې ډوله، تیس، بدشکله، بې ډوله (مخ).

پړیم (prim) ص. نر. م. پړیم، لخته شوې وینه، یخه وینه، کلکه وینه، پرنډه وینه.

پړین (prin) ص. نر. م. ډېـر خوړین، زیات پـوخ، له وخته تېر، خوړین پړین، خوړت پړت.

پړینگ (pring) نر. م. ۱) چینگ، د ژړا د پیل اواز؛ ۲) هغه سپینه ماده چې دبچي له پیدا کېدو څخه مخکې له غوا څخه راوځي؛ ۳) د کـولمو د پاسه د غوښې یوه کلکه پرده.

پړینګهار (pṛingahā́r) نر.م. چینګهار، د ژړا د پیل اواز.

پري والا (paṛiwālā́) ص.نر.م ۱) رسۍ پلورونکی ۲) پنډي، جوالي، کلي، حمال.

پز څپونی (pazcapū́ṇáy) ص.نر.م. د پزې څپونی، د پوزې دستمال.

پزغمی (pazğámay) نر.م. تیک، چارګل، خلی، مېخک، مېخکی، د ښځو د پزې ګاڼه ده.

پزول (paẓawál) مص.مت. ۱) بزول، بدکاري کول، بدفعلي کول؛ ۲) داړول، بیرول، وېرول.

پزوهل (pazwahál) مص.مت. په نشتر وهل، وینه کښل، رګ وهل.

پزه (pazá,a) ښځ.م. پوزه، تمبزی، پیزه، سرمه..

پزی (pázay) نر.م (ج.پزي) ۱) بوی، ورم؛ ۲) ښځ. م. چاغوالی، څوربوالی، غټوالی.

پزېدل (pazedál) مص.مت. ۱) جوشېدل؛ ۲) ژوبلېدل؛ ۳) مص.ل. ترېدل، پزېز کول.

پزیز (páziz) نر.م. پزنی، هغه آواز چې په پوزه ادا کېږي.

پزین (pázin) ص.نر.م. له پوزې نه جوړ شوی، له مزري نه جوړ شوی شی، له انډېري سره اړوند.

پژرکی (pažárkay) ص.نر.م. ۱) بېرګی، قهرجن، حملې ته تیار؛ ۲) خپه، ژر خپه کېدونکی.

پژواک (pažwā́k) نر.م. ۱) ازانګه، انګازه، انګې، د غږ غبرګېدنګ؛ ۲) د یوه ګل نوم؛ ۲) یو افغاني سیاستپوه، شاعر و لیکوال چې نوم یې عبدالرحمن و.

پژی (pažáy) نر.م. (ج.پژی) پړی، ځان، جثه، تنه او بوده، قواره، اندام.

پړل (paẓál) مص.مت. تراشل، توږل، تراشول.

پړوی (paẓwáy) نر.م. (ج.پړوي) د تنستې یو سر او بل سر ته لګېدلې لرګی..

پړی (paẓáy) نر.م. ۱) و.ګ.پژی؛ ۲) لیچه، لبڅه، د لاس یوه برخه.

پس[1] (pás) ق. بیا، وروسته، پس له دې، له دې وروسته، ناوخته، پس ته، شا ته؛ ۲) او.تو.

پس[2] (p(a,u)s) نر.م. ۱) نری غږ؛ ۲) پسکی، له معدې نه د هوا خارجېدل.

پسات (pasā́t) نر.م. فساد، شر، پساد.

پساتي (pasā́ti) ص.نر.م. فسادي، شري، وران سړی، شیطان.

پساري (pasā́ri) نر.م. هغه دوکاندار چې بادیان، اربېږ، سپېرکی، او... خرڅوي.

پساله (pasālá) نر.م. ګاڼه، زیور، پسول، کالی.

پسان (pasā́n) نر.م. بلور، د بلور کاڼی، نوزی، د ځرخ کاڼی، د چړې د تېره کولو ګرده ډبره.

پسانی (pasā́ṇay) ص.نر.م. پخنی، پڅانی، لږ، کم، خځوری، څنی، خسنی.

پساو (pasā́w) نر.م. ۱) پاتې شوې ښوروا؛ ۲) هغه څمکه چې تر ټولو په آخر اوبه کېږي؛ ۳) مغزاوه هغه اوبه چې یو وار جامې په کې پرېمنځل شي او بیا نورې جامې په کې خښتې کړي.

پس پسی (paspásay) نر.م. پسېدنه، د شونډو په سر خبرې کول، په غوږو کې پټې خبرې.

پست (pást) ص.نر.م. ۱) کښته، لاندې، ټیټ، کوز؛ ۲) رذیل، بې وجدانه، د بدو اخلاقو خاوند.

پستاندار (pistāndā́r) ص.نر.م. تی لرونکی، غولانځ لرونکی، شیدې ورکوونکی.

پستکی (pastákay) نر.م. ۱) بوسغی، پوڅکی، د غوږو نرمۍ؛ ۲) هر نرم او نازک شی.

**پستکی** (pastákay) ښځ.م ۱) پخکی، پوځکی، پستوکی؛ ۲) هر نرم شی.

**پستنه** (pastána) ق. ۱) بېرته، بیا راګرځېدل، راستنه، جاروتل، واپس، په وروستو؛ ۲) ښځ. مج. شاته تلنه، قهقهرایي؛ ۳) قی، کانګې.

**پستو** (pastū́) نر.م. ۱) پس خونه؛ ۲) د پاچا یا آمر هغه سامان چې د هغه له روانېدو څخه وروسته وروسته ورپسې وړل کېږي.

**پستوالی** (pastwā́lay) نر.م. ۱) پوستوالی، نرموالی؛ ۲) ټیټوالی، لاندې والی.

**پستور** (pastawə́r) نر.م. پسته وور، نرم باران، نري څاڅکی، ښورمک، نرمه شیګره.

**پستورګی** (pastwárgay) نر.م. هغه پسه چې نرمې او پستې وړۍ لري.

**پستوړه** (pastū̱rá) جن. پاسته اوړه، نرم اوړه، ترمېده، نرمه دوړه، میده اوړه.

**پستوکی** (pastū́kay) نر.م. ۱) د غوړ نرمۍ، بوستۍ؛ ۲) پوستوکی، څرمن، پوست.

**پستول** (pastawə́l) مص. مت. ۱) میده کول؛ ۲) نرمول؛ ۳) ښه وهل، ډبول، ټکول.

**پسته** [۱] (pastá) ښځ.م ۱) نرمه، ملایمه؛ ۲) د پندۍ غوښه؛ ۳) ق. پس ته، بیا، وروسته، بل وار، بله پلا؛ ٤) نر.م. بېرته شه! بېچ شه، پس شه.

**پسته** [۲] (pıstá) ښځ.م. وچه مېوه ده چې دانې وړې او چغزې یې زرغون رنګ لري.

**پسته وور** (pastawū́r) نر.م. ۱) نرم باران، نري باران، ښورمک؛ ۲) شبنم.

**پستي** (pásti) ص. ښځ.م. ۱) ټیټوالی، لاندې والی، ښکته والی؛ ۲) ذلیلتوب.

**پستې** (pasté) ښځ.م.ج ۱) کنکۍ ژبه، حلقۍ ژبه، وړه ژبۍ؛ ۲) د پست جمع، نرمې.

**پستېدل** (pastedə́l) مص. ل. ۱) نرمېدل، میده کېدل؛ ۲) وهل کېدل؛ ۳) خبرې ته راضي کېدل

**پسخاک** (pasxā́k) نر.م. غم، نول، پرېشاني، فکر، کړاک، زړه خوړل، اندېښنه.

**پسخند** (pısxánd) نر.م (ج. پسخندي) ریشخند، پېشاړه، ملنډې، مسخرې.

**پس خورده** (pasxordá) ص. ښځ.م ۱) پاته شونې، جوټه، پاتې شوی خوراک؛ ۲) کنګړ، کنکړ.

**پسخول** (pasxwə́l) مص. مت. ۱) په غوسه کول، قهرول، تحریکول؛ ۲) نر.م. د اري بوره؛ ۲) ګیچه، څڅبوکی، زوړل، زوول، توفاله.

**پسخه** (pasxá) ښځ.م. (ج. پسخې) و ګ. پخسه.

**پسرلنی** (pasarlánay) ص. نر.م. د پسرلي، د پسرلي مربوط.

**پسرلنۍ** (pasarlanáy) ښځ.م. ۱) د پسرلي اړونده بولله (شعر، قصیده)؛ ۲) د پسرلي مربوطه.

**پسرلی** (pasárlay) نر.م. (ج. پسرلي) څرمونی، څرمنی، سپرلی.

**پسرو** (pasráw) ص. نر.م. ۱) ورپسې تلونکی، تعقیبوونکی؛ ۲) نر.م. پسګویي، غیبت.

**پسکاوڼ** (paskāwá̱n) ص. نر.م. پسکن، پسن، تسن، تسکن.

**پسکاوڼه** (paskāwa̱ná) ښځ.م. ۱) د پسکاوڼ د کلیمې مؤنث؛ ۲) د الوبالو په څېر یوه ونه ده.

**پسکه** (paská) ښځ.م. ۱) ورسته، ورسته بېدۍ؛ ۲) هر ښځینه وروست شی؛ ۳) پسکی.

**پسکی** (pusákay) نر.م. پس پس، پس پسی، په غوږ کې خبرې، پټې خبرې.

**پسکۍ** (paskáy) ښځ.م.ج. پسکه، تس.

**پس منظر** (pasmanzár) نر.م. شالید، تاریخي سیر، پخوا ته نظر کونه.

**پسندی** (psánday) نر.م. د سپښتو لوبه.
**پسنی** (pásnay) نر.م. (ج. پسني) او گ. پسونی.
**پسوا** (paswā́) ق. پسې شا، شاته، په غیاب کې.
**پسور** (pasór) نر.م. سور، بر، لنډوالی، په‌لنډو، پلنوالی.
**پسورور** (pasorawár) ص. نر.م. سورور، پلن.
**پسول**(۱) (pasól) نر.م. گانه، زېور، گينه.
**پسول**(۲) (pasáwəl) مص. مت. ورو ورو غړول، غلی غلی په‌خبرو راوستل.
**پسول**(۳) (pusáwəl) مص. مت. څکول، په سگرېټ، چلم، او پایپ باندې د خړو سکو جوړول.
**پسولل** (pasolál) مص. مت. سینگارول، ښکلل، گاڼل، ښایسته کول، ډولي کول، پسولول.
**پسولېدل** (pasoledál) مص. ل. ډولی کېدل، ښایسته کېدل، ښکلی کېدل.
**پسونی** (pasúnay) نر.م. ۱) په کندې کې ناست، په‌څوکۍ کې ناست؛ ۲) مورچل، خڅه، خزه، څوکۍ، څارځای، کمين، څوځای.
**پسه**(۱) (psá) نر.م. (ج. پسونه) ۱) گډ، مېږ، نروز؛ ۲) ص. نر.م. ساده، ناپوه.
**پسه**(۲) (pása) ق. ۱) وروسته، پسته، له دې پسه، له‌دې وروسته، بیا؛ ۲) ښځ. م و گ. پسکه.
**پسهار** (pashā́r) نر.م. پس پسي، پټې خبرې.
**پسي** (pɪsi) ص. نب. مغرور، متکبر، کبرجن.
**پسې** (páse) ق. ۱) وروسته، ورپسې، څېرمه، شاته؛ ۲) ښځ.م. ج. ککړی، پسه، هغه زېړی چې د کوز د خاوند له‌خوا شپانه ته دوري د پیدا کېدو په‌وخت کې ورکوي؛ ۲) د نجلۍ د پیدا کېدو په مناسبت شېريني.
**پسېدل** (pasedál) مص. ل. ۱) پس پس کول، پټ پټ غږېدل، سوکه سوکه ږغېدل؛ ۲) پخېدل.
**پسېره** (paserá) ق. پرسېره، برسېره.
**پسې شا** (pas(e,i)šā́) ق. پشلا، پسوا، په نا موجودگۍ کې، په‌غیاب کې.
**پسين** (pasin) ص. نر.م. وروستنی، آخرنی.
**پسینه** (pasiná) ص. نب. ۱) وروستنی، آخرنی، له تاکلي وخت څخه وروسته کرل شوی فصل؛ ۲) افکس، سیفیکس، په گرامرکې د کلیمې منځني او وروستني ورروستاړی.
**پسیه** (pasyá) ښځ.م. (ج. پسیې) بُسرې، پسه، د وري یا ورغومي د پیدا کېدو له امله د رمې د خاوند له‌خوا شپون ته انعام ورکول.
**پش**(۱) (páš) نر.م. (ج. پشیان) غورپش، نرپش، پشی، پشک، د پیشو مذکر شکل.
**پش**(۲) (paš) نر.م. ۱) پښ، پښهار، د باد اواز، د مار اواز؛ ۲) د اور لمبې، د لمبو غرهار.
**پشار** (pašā́r) نر.م. (ج. پشارونه) پیروی، ملايي، قیماق، قیماغ، ارياش، رش.
**پشت**(۱) (pušt) نر.م. (ج. پشتونه) ۱) دچرگې شو، دیوې چرگې د هگیو له شروع څخه ترکوړ کېدو پوري دوره؛ ۲) د چرگې په‌ډونگه کې دهگیو ځای؛ ۳) شا، څټ؛ ٤) نسل، خاندان، کورنی؛ ٥) پېړی؛ ٦) دبیالې پشت، د کاریزه پشت.
**پشت**(۲) (pášt) نر.م. پشته، پیشی، پشې شبه، د پیشو یا بلیکی د شړلو اواز.
**پشته** (puštá) ښځ.م. (ج. پشتې) ۱) بند، تهوکر، د سېلاب دمخنیوي لپاره مانع یا خنډ؛ ۲) وقایه، مقوا د کتاب پوښ؛ ۳) د غره ډډه، د غونډۍ ډډه.
**پشتي** (pušti) ښځ.م. (ج. پشتي گانې) ۱) تکیه، سرو بېړدی؛ ۲) هغه دېوال چې د زاړه دېوال د کلکوالي لپاره جوړېږي.

**پښتی** (pıšťay) نـر.م. (ج. پـښـتي) پاپي گک، چيني گک، يو کوچنی سپی.

**پښخل** (pašxál) نـر.م. گنگخړ، نبـزه، وړی، خځلی، تيه وړی، گنگخړی، خس و خاشاک.

**پش غوږه** (pašgwáẓa) ص. ښځ.م. سپين غوږې وزه.

**پښقاب** (pıšqā́b) نر.م (ج. پښقابونه) پرچ، غاب، نالبکی، بشقاب، رکبيی.

**پښک** (pıšák) نـر.م. بونی، سپونی، سپېلومی، پيسک، برص.

**پښکال** (pašakā́l) نر.م. و گ. بشکال.

**پښکالی** (pašakāláy) ص. نب. د پښکال، هغه وابنه چې په پښکال کې راشنه کېږي.

**پښکالۍ** (pašakāláy) ښځ.م. ج. پلش، بارانی، برساتی، د باران کوټ.

**پښکنډی** (pıškanḍáy) نـر.م. (ج. پښکنډي) ۱) پښنگوری، د پښې بچی؛ ۲) د کوچنيانو يوه لوبه ده.

**پښکه** (páška) ښځ.م. (ج. پښکې) داره، پلښه، پلښکه، د مايعاتو (يا وينې) داره.

**پښلا** (pašalā́) ق. پسې شا، په غياب کې.

**پښلره** (pašlára) ښځ.م. اخنک، پيشتری، يو ډول گياه يا سابه.

**پښم** (pašám) نر.م. ۱) نری باران، ښورمک، شوغ، پرخه؛ ۲) ډېر نری ويښته؛ ۳) وړی.

**پښمکه** (pašmáka) ښځ.م. (ج. پښمکې) زمی، يو ډول بوټی دی چې جامې پرې مينځي.

**پښلی** (pašálay) نر.م. په کاچوغې (قاشقې) سره تاوده مايعات سړول، د تودو اوبو سړونه.

**پښمی** (pašmáy) نر.م. جـونگی، جـونگ، د اوښ بچی چې يو کلن وي.

**پښنگ** (pıšáng) نر.م. هغه کچر، خـر يا آس چې د کاروان په سر کې روان وي.

**پښنگوری** (pıšangūray) نـر.م. پښکوټی، پيشونگړی، د پښې بچی، پښنگر.

**پښواز** (pıšwā́z) نر.م. ۱) جامن، ختايي، خلکی، د بازينگر د گډا جامه؛ ۲) يو ډول کميس.

**پښوپړی** (pıšopṛáy) ښځ.م. يو ډول توپ بازي.

**پښوگی** (pıšogáy) نـر.م. (پښوگي) پيشوگی، نرپش، د پښې بچی، پښنگوری، پښکوټی.

**پښول** (pašawál) مص. مت. پښول.

**پښونډک** (pasonḍák) نـر.م. پشانډوک، غل، هغه سـړی يا هلک چې وړې وړې غلاوې کوي.

**پښه** (páša) ښځ.م. ۱) پيشو، پيشی؛ ۲) پښې، پښتې، پيشته، د پيشو د شړلو اواز

**پښی** (pášay) نر.م (ج. پښي) ۱) يـو ډول لـوبه ده؛ ۲) پيشو؛ ۳) غونجی، لنډغوږی سيرلی.

**پښې** (páše) ښځ.م. پيشته، پيشتې، پيشې، د پيشو د شړلو آواز.

**پښۍ** (pašáy) ښځ.م. ج. ۱) پيشو، پيشي؛ ۲) يو ډول خـزنده ده چې په کـرنيزو ځمکو کې پيدا کېږي؛ ۳) هغه غـنم، چنې چې نينې کېږي.

**پښېدل** (pašedál) مص. ل. و گ. پښېدل.

**پښېرلی** (pašerláy) نر.م. يو کلن سېرلی.

**پښې شا** (pašešā́) ق. و گ. پسې شا.

**پښ**[1] (páṣ) نر.م. اهنگر، لوهاړ، آيينگر.

**پښ**[2] (puṣ, paṣ) نر.م. پش، د مـار آواز، د غوايي ښناري، د باد غږ.

**پښانگه** (paṣangá) ښځ.م. د مشک ښانگه، د ژي ښانگه، ښانگه، د غړ کې پښه.

**پښبنی** (paṣbanáy) ښځ.م. (ج. پښبنۍ) د پښ بنۍ، د لوار بنۍ، د من بنۍ.

**پښت** (páṣt) نر.م. ١) پشت، ځهل، تبر، پښه، ريښه، نسل؛ ٢) ، سړی؛ ٣) ستو، نيم حامي اوربشي يا غنم بيي او بيا ميده شي نوورو سته گوړه يا بوره ورسره گډه شي؛ خوازه خواږه ځني جوړيږي. گوړداني او ستوان يې هم بولي.

**پښتنواله** (paṣtanwālá) ښځ.م. پښتونواله، پښتونولي، پښتو، پښتني خويونه، پښتني اخلاق.

**پښتني** (paṣtáni) ص. نب. د پښتنو، د پښتون، په پښتو برابر د پښتنو له دود دستور سره برابر

**پښتو** (paṣtó) ښځ.م ١) پښتو ژبه؛ ٢) پښتنواله، پښتونولي؛ ٣) مج. هود، توري، مېړانې؛ ٤) د يوې مجلې نوم چې لومړی ځل په ١٣١١ کال کې دکندهار د پښتو انجمن دخپرنيز اورگان په توگه راووتله، اوس د افغانستان د علومو اکادمی د پښتو څېړنو مرکز نشراتي اورگان دی؛ ٢) د پښتو په نامه په کوزه پښتونخوا کې هم يوه مجله خپرېږي.

**پښتوپانگه** (paṣtopāngá) ښځ. م. ١) پښتو زېرمه، پښتو ذخيره؛ ٢) د يوه کتاب نوم.

**پښتو پښويه** (paṣtopaṣoyá) ښځ. م. د پښتو گرامر، د ژبې قواعد؛ د يوه کتاب نوم دی.

**پښتو اکاډمي** (paṣtoakāḍumi) نر.م ١) وگ. پښتو ټولنه؛ ٢) په پېښور او کوټه کې د دوو بېلا بېلو علمي څېړنيزو مؤسسو نوم دی.

**پښتو ټولنه** (paṣtoṭolána) ښځ.م. پښتو انجمن، دا ټولنه په نړۍ کې د پښتو اکاډمي په نامه پېژندل شوې وه، په ١٣١٦ ل کال کې د کابل د ادبي انجمن او د کندهار د پښتو ادبي انجمن د ادغام په پايله کې منځ ته راغله چې اوس د علومو په اکاډمۍ کې د يوه انستيتوت په سطحه فعاليت کوي.

**پښتورگی** (paṣtawǝ́rgay) نر.م. بډوگی، بډوډی.

**پښتو ژبی** (paṣtožǝ́bay) نر.م. (ج. پښتو ژبي) هغه څوک چې ژبه يې پښتو وي.

**پښتو سيند** (paṣtósind) نر.م. پښتو قاموس، د يوه قاموس نوم دی.

**پښتو مرکه** (paṣtomaraká) ښځ.م. هغه علمي مؤسسه وه چې د امان الله خان د واکمنۍ په لومړيو وختو کې تأسيس شوه.

**پښته** (puṣtá) ښځ.م. (ج. پښتې) ١) د تاکو پشتې، د پالېزه پښتې؛ ٢) غونډۍ، تپه.

**پښتۍ** (paṣtáy) ښځ.م. ج. ١) هغه نري هډوکي چې د سينې قفس يې جوړ کړی دی؛ د کتاب پښتۍ؛ ٢) دځنگ تکيه (بالښت).

**پښتېدل** (puṣtedǝ́l) مص.ل. وگ. پوښتېدل.

**پښکی** (puṣkáy) نر.م. د مار، د بنۍ، د باد د جريان او د باد د چلېدو اواز.

**پښلي** (pṣáli) ښځ.م. ماسۍ، هغه جرابې چې د څرمنې پوښ وراچولی شوی وي.

**پښلی** (puṣálay) نر.م. (ج. پښلي) پايل، پايزېب، پښې زېب، پښولی، پيزېب.

**پښ مار** (paṣmā́r) نر.م. بنۍ وهونکی، دم کوونکی هغه څوک چې سکاره تازه کوي.

**پښندی** (pṣánday) نر.م. ١) پښولی، پښوندی؛ ٢) زولنه، بېړی، ډويک.

**پښنگه** (pṣangá) ښځ.م. دوه خاښې، دوه غاښې سکو، هغه آله چې د هغې سره د درمنده لواړ غنم او اروې يا ځوزان پرې شيندي.

**پښوکي** (paṣúki) ښځ.م. هغه جورابې چې د پنجې يا پښې ځای نه لري.

**پښول** (paṣawə́l) مص. مت. ۱) د مار یا غوا پښ پښ؛ ۲) لوهار په بنۍ اواز یا باد ایستل؛ ۳) په غوسه کول، قهرول.

**پښولی** (paṣū́lay) نر. م. (ج. پښولي) پایزېب، پایل، د پښو ګاڼه.

**پښویه** (pṣoyá) ښځ. م. ۱) د ژبې قاعدې، صرف و نحو، ګرامر؛ ۲) د یوه کتاب نوم.

**پښه** (pṣá) ښځ. م. (ج. پښې) ۱) ښپه؛ ۲) کورنۍ، خیل، ټبر؛ ۳) حصه، برخه.

**پښه ارته** (paṣaartá) ښځ. م. پای وازی، د پښې ارتونه، په نوې خېښۍ کې د زوم د کورنۍ او د نجلۍ د کورنۍ یوه او بل ته مېلمستیا کول.

**پښه پرځای** (pṣaparʒā́y) د چپرځای، سمه بنه، عسکري بولۍ (قومانده).

**پښه سوری** (paṣasū́ray) نر. م (ج. پښه سوري) هغه چرګ چې د ناوې د راوړلو وروسته د آس یا موټر په مخ کې حلالېږي.

**پښه یبل** (paṣayibə́l) ص. نر. م. پښې یبلې، پښېله، پښې لوڅی، بې پیزاره پښې.

**پښې** (paṣə́y) ښځ. م. شوکری، رواش.

**پښی** (pā́ṣay) نر. م. مروړه، مرړی، لته کش؛ ۲) له کوهي څخه د اوبو د بو کې د ایستلو رسۍ.

**پښېدل** (paṣedə́l) مص. ل. د مار یا غوایي پښې پښې کول.

**پښې لوڅ** (paṣelū́c) ص. نر. م. و ګ. پښې یبل.

**پښېمان** (paṣemā́n) ص. نر. م. ۱) پښېمانه، لېچخور؛ ۲) له خپل عهد او قول څخه اوښتلی؛ ۳) شرمنده.

**پښېمانتوب** (paṣemāntób) نر. م ۱) پښېماني، پښېمانتیا، له خپلې ارادې ګرځېدنه؛ ۲) بې ژبي، له خپله قوله ګرځېدنه؛ ۳) شرمنده توب.

**پښېمانېدل** (paṣemānedə́l) مص. ل. ۱) له خپلې ارادې ګرځېدل؛ ۲) له خپله قوله ګرځېدل، له خپلې وعدې اوښتل؛ ۳) شرمنده کېدل.

**پغنه** (pağná) ښځ. م. په کوپین، تسکورې او مېښې سره د ځمکې د نرمولو کار.

**پغه** (pā́ğa) ض. په هغه، د (په هغه) مخفف شکل.

**پف**(۱) (paf) نر. م. د ګنډلو یو ډول ماشین دی.

**پف**(۲) (puf) نر. م. ۱) د افسوس کلیمه؛ ۲) ورکشه؛ ۳) د کوم چا د مبالغې په مقابل کې د غبرګون په توګه هم پف وایي.

**پک** (pák) ص. نر. م. ۱) ګنجی؛ ۲) نر. م. سنګاوړ، د کشتۍ چپو؛ ۳) پخه، د سرپخې؛ ۴) وخت، موقع؛ ۵) د ښېډۍ مړه، بوک؛ ۲) وار، پېر.

**پکار** (pakā́r) ص. نب. ۱) په کار، په ښه، په ښمر، په ګټه؛ ۲) باید، اړین، حتمي؛ ۳) خوښ، منلی؛ ۴) غوښتنه.

**پکارېدل** (pakāredə́l) مص. ل. په کار کېدل، په کار راتلل، په ښمرېدل.

**پکرول** (pakaráwəl) مص. مت. ۱) ګرول، نوکارې پرې لګول، ګروشبېل؛ ۲) پارول، کتول.

**پکرېدل** (pakaredə́l) مص. ل. ۱) ګرېدل، ګروشېدل ۲) قهرېدل، پارېدل، تورېدل.

**پکړ** (pakáṛ) ص. نر. م. ۱) خوار، غریب، مسکین؛ ۲) نر. م. د لمنځې لرګی، دارچې لرګی.

**پکل** (pakál) نر. م. ۱) کېر، چغ، پرده، هغه پرده چې له دورمو (نی) یا لوخو څخه جوړېږي؛ ۲) مص. مت. پینل، کپه اچول، تلې اچول.

**پکنه** (pakə́na) ښځ. م. (ج. پکنې) پیننه، کپه اچونه تلې اچونه، ورغوی اچونه.

**پکو** (pakó) ص. نب. پوزې ته راغلی، په تنګ، بې حوصلې، په عذاب، له ځانه ستړی.

**پکول** (pakól) نـر.م. ورینه ژمنی ... ولی، هغه خولۍ چې سر تر غوږونو په کې پ... ي.

**پکوړه** (p(i,a)kowṛá) ښځ.م. کچالو ... د نخودو په اوړو کې ککړ او په غوړو کې سر... شي.

**پکونۍ** (pakūṇáy) ښځ.م. هغه طلا... سوې ښځه چې بل چا نکاح کړې وي.

**پکووالی** (pakowā́lay) نر.م. ... دنه، پزې ته راتلنه، پوزې ته راتلنه، په عذابېد...

**پکه** (paká) ښځ.م. ۱) ببوزی، بادپکې ... ادپکه؛ ۲) گنجی، ښېښتۀ وتلې، لـښډی؛ ۳) ... نی، تلی، ورغومی.

**پکه باښه** (pakabāṣá) ښځ.م. کـوکـه ... ه، یو ډول مرغه دی چې بسر یې پک وي.

**پکه پاپکی** (pakapāpakáy) ښځ.م. یو ... ل واښه چې بېخ یې د کچالو غوندې دی.

**پکه تیږه** (pakatiẓá) ښځ.م. و گ. پله تیږه.

**پکۍ** (pakáy) ښځ.م ۱) اډی، د یوه جریب په اندازه یوه تخته پټی (ځمکه).

**پکی**[1] (pákay) نـر.م. (ج.پکي) ببـوزی، بیزی، بادپکی، بادپکه.

**پکی**[2] (pákay) نر.م ۱) دپک تصغیر؛ ۲) کلک.

**پکېدل** (pakedál) مص.ل. پک کېدل، پو گ کېدل، گنجی کېدل، روټن کېدل.

**پگ** (pág) نر.م (ج.پگونه) غټه پگړۍ، غټ د... ار، لوی پټکی.

**پگاړه** (pagāṛá) ښځ.م. (ج.پگاړې) اشر، بلندر، بسکر، پگړه.

**پگړۍ** (pagṛáy) ښځ.م. ۱) دستار، پگ، پټکی، لنگۍ، لنگوټه؛ ۲) غیرت، همت.

**پگڼ** (pagáṇa) ښځ.م. ۱) و گ. پگاړه؛ ۲) د هندي کال یوولسمه میاشت، هندي (پهاگڼ).

**پگونډه** (...wáṇḍ...) نر.م. د ځسکې هغه وېش چې د نارینه و پر... ت کېږي.

**پگه** (pága) ښځ. ... گ. پگړۍ.

**پل**[1] (pál) نر.م ... ام، قدم؛ ۲) د پښې نښه، منډ؛ ۳) د ژرندې ... د کانی؛ ٤) د کـلال څـرخ؛ ٥) معافونه ... ښنه؛ ٦) خصي ځاروی.

**پل**[2] (pıl) نـر.... د سترگو رپ، یوه گړۍ، لـږه شېبه، کم... ؛ ۲) و گ. پیل.

**پل**[3] (pul) نر.م. ... پلونه) پر ویالې یا سیند د پاسه د تېرېدو جو... شوې لاره.

**پلا** (plā́) ښـځ.م. ... پلاوې) ۱) نوبت، وار، ځـل، دفعه؛ ۲) وخـ... دوره، تگ، گشت.

**پلار** (plā́r) نر.م. ... پلرونه) آبا، بابا، دادا.

**پلارتوب** (...lārtób) نر.م. پلاروالی، پلارکېدنه، پلارولي.

**پلارخېل** (plā́rxel) نـر.ج. پلـرگنی، پلارگنی، اباگنی، پلـ... ي خپلوان.

**پلارمړی** (plārm...ay) نر.م. (ج.پلارمړي) یتیم شوی، بې پلاره شوی، یتیم.

**پلارنیکه** (plārn...ká) نـر.م. کـورنی، کوړمه، خېل خانه ... رگه، نسب.

**پلارواکي** (plārw...) نـر.م. هغه تاریخي دوره چې په هغـ... کې د یوې کـورنۍ تول صبلاحیت د پلار په وا... کې وي. پاتریکال.

**پلاز** (plā́z) نـ... م. ۱) تخت، د پادچاهانو د ناستې ځای؛ ... واده په ورځ دزوم او ناوې د کېناستلو ځای.

**پلازمېنه** (plāzmená) نـر.م. (ج.پلازمېنې) دارالحکومه، پایتخت، د یوه هېوادمرکز

**پلاس** (palā́s) نـر.م. ۱) ټاټ، بوجی، غټ او شـډل تڼکر؛ ۲) گلم، تغر؛ ۳) انبورته ورته یوه آله.

**پلال** (palā́l) نر.م. ۱) غوښتنه، لتبه؛ ۲)، ساتنه.
**پلاله**[1] (palālá) ښځ.م. ۱) پروړه، دروزه، واښه، سواره؛ ۲) منډلی، درمند سرای.
**پلاله**[2] (plālá) ص. نب. خوزاره، پلال گیره پټی، هغه پټی چې غنم او اوربشې ورباندې کرل شوې زي او بې وربېل شي.
**پلان** (plā́n) نر.م. (ج. پلانونه) ۱) نقشه، طرح، خاکه، پروژه؛ ۲) تجویز، تدبیر.
**پلانده** (plāndá) ښځ.م. غبرګنیول، خوانیول، پهلواني ۲) مجادله، جګړه، نزاع.
**پلانکی** (plā́nkay) ض. پلانی، فلانی، فلانکی، مبهم ضمیر دی.
**پلاڼ** (plā́ṇ) نر.م. کته، هغه غټ توکی یا ګېډی چې پرمخ یې ترنګر ګنډل شوی وي او د بار وړونکو حیواناتو پرشا اچول کېږي.
**پلاڼه**[1] (plāṇá) ښځ.م. ژی، رابیا، د اوبو مشک، لوی مشک، لوی ژی.
**پلاڼه**[2] (palāṇá) ښځ.م. ۱) درمند، د بوسو کوټه، بوساړه؛ ۲) ترکټې لاندې هغه توټه چې د خره په شا اچول کېږي؛ ۳) کته، ځل.
**پلاو** (palā́w) نر.م. پلو، پیلاو، په حرارت باندې پخې شوې وریجې.
**پلاوی** (p lā́way) نر.م. استازډله، لېږلی شوی هیئت.
**پل پټی** (palpáṭay) نر.م. پل ګرځوونکی، پل غلطوونکی، هغه سړی چې غل وپېژني او پل یې پټ کړي.
**پلپل پاڼې** (palpalpā́ṇe) ښځ.ج. ۱) د سپېدار د ونې پاڼې؛ ۲) د چینار یو ډول.
**پلپوټ** (palpóṭ) ص. نر.م. ۱) پټ، مخفي؛ ۲) نر.م. پرده اچونه، عیب پټونه؛ ۳) ګرځونه، اړونه؛ ٤) اغوستنه؛ ٥) یوه خبره ورانسونه؛ ٦) غوښتنه، لټونه، پل پیټ.
**پلپولک** (palpolák) نر.م. یو ډول تریخ بوټی دی چې اوبو ته نږدې او په اوبو کې توکېږي.
**پلپېټ جن** (palpeṭján) ص.نر.م. پلټمن، ناقراره، ناارامه، اشوراند.
**پلت** (plát) نر.م. ۱) یوه توټه ځمکه، لږ ځمکه؛ ۲) طرحه، نقشه، مسوده؛ ۳) خیال، نظریه.
**پلتري** (plátri) ښځ.م. لښتۍ، والۍ، د غوړو مندرۍ، د ښځو د غوړونو ګانه.
**پلترۍ** (palatráy) ښځ.م. پلتۍ، پرلت، پلتنې.
**پلتګ** (paltág) نر.م. تقلید، پیروي، متابعت، په چا پسې تلنه، تقلید کونه، د چا په پله تلنه.
**پلتند** (palatánd) ص. نر.م. نارامه، ناکراره.
**پلته** (paltá) ښځ.م. ۱) پیلته، پلیته، د ډېوې وټ، د مالوچو پلیته چې په لاتین او... کې یې اچوي؛ ۲) تیلی، د ګوګړ خاش؛ ۳) د تابلېټونو څو دانې چې په کاغذ او یا په پلاستیکي پوښ کې اېښودل شوي وي.
**پلتۍ** (palatáy) ښځ.م. په ګونډو کېناستنه، پلترۍ.
**پلټل** (palaṭál) مص. مت. ۱) لټول، کتل، اړول راړول؛ ۲) څېړل، مطالعه کول..
**پلټمن** (palaṭmán) ص. نر.م. نارامه، ناکراره.
**پلټن** (palṭán) ښځ.م. (ج. پلټنې) پلټنه، عسکر، پوځ، د پلیو عسکرو ټولګی، پلي عسکر چې شمېر یې له (۷۰۰-۱۰۰۰) پورې وي.
**پلټنی** (palṭánay) ص. نر.م. عسکر، سپاهي.
**پلټون** (plaṭū́n) نر.م. کتنه، پلټنه، لټون.
**پلټونکی** (plaṭūnkáy) نر.م. لټوونکی، تالاشي کوونکی، اړوونکی راړوونکی، مفتش.

**پلچک** (pulčák) نر.م. ۱) پېروته، پېروته، عشق پېچان گل؛ ۲) کوچنی پل، پل گوټی.

**پلخ** (plác) ص. نر.ج. ببر، ډېر ویښته، ګڼ ویښتان.

**پلخېور** (plaččewár) ص. نـر.م. ببـر وېښته لرونکی ځاروی.

**پلرګنی** (plarganáy) ښځ.م. و ګ. پلارخېل.

**پلرنی** (plaránay) ص. نـر.م. د پلار، پـلار پورې تړلی.

**پلستر** (plastár) ښځ.م. ۱) هغه پټۍ چې پر تپ یې ږدي؛ ۲) جرابه؛ ۲) اخېړ، لېو، کاګل.

**پلسه** (palása) م. دروازه، لویه دروازه، د ښار ور.

**پلشته** (palıštá) ص. ښځ.م. کنچنۍ، پلیـته، بد عمله ښځه، بدکاره ښځه.

**پلغاشه** (palğāšá) ښځ.م. سسته غوټه، غوړیاشه، هغه غوټه چې ژر خلاصېږي.

**پلغټ** (palğáṭ) ص.نر.م ۱) وندی، ګړندی، چټک؛ ۲) نر.م. سر کونډی، سر په ککرۍ اوښتل.

**پلغټي** (palğáṭi) ښځ.م. تېزي، چالاکي، وندیتوب.

**پل غلط** (palğalát) ص. نـر.م. منافق، تګ، دوه مخی، بدچلنده، بدګوزاره.

**پلک** (pálk) نر.م. داوسپنې غټ ځتک چې د اوسپنو د ټکولو او سمولو لپاره په سندان ټنبلي.

**پلکه** (palká) ښځ.م. (ج. پلکې) ۱) پنکی، وړوکی مېـخ؛ ۲) ښېخ، ریښه؛ ۳) د ممیـز په ښېخ کې خلی؛ ٤) موټی، قبضه، د توري موټی.

**پلکی** (palakáy) ښځ.م. کېـږه، د. بیوې په کـونده کې هغه کړۍ چې سسپار پرې کلکوي.

**پلګوانبه** (palgwāṣá) ښځ.م. غـوریشه، غـونیاسه، غوړیاشه، پلوانبه، د چینې د تړلو تاري حلقه.

**پلمن** (palmán) نـر.م. پلین، پلینه، یوه ونه ده چې له ځانګو، جرړو ځخه یې مسواک جوړوي.

**پلمه** (palmá) ښځ.م. (ج. پلمې) بهانه، بانه، حیله، مکر، فریب.

**پلن** (plán) ص.نر.م. ۱) بـرداره، سوروړ، عـریض؛ ۲) مسطح، اوار؛ ۳) پلی، پیاده؛ ٤) نر.م. مف پلن شوی، ټکول شوی، اوارشوی.

**پلن پانی** (planpāṇáy) نر.م. ګـوېی، کرم، ګلپی (ګلداره کرم).

**پلن تنی** (plantánay) نر.م. د تناسلي آلت سر.

**پلنتوب** (plantób) نر.م. پلنوالی، پسورورتوب، پلنتیا، سرورتیا، په سورلوی والی.

**پلندر** (palandár) نر.م. د مور دویم مېړه.

**پلندی** (planḍáy) ښځ.م. ۱) جبه، بوختره؛ ۲) ټګي، مکر، فریب، دوکه، چل.

**پلنډه** (planḍá) ښځ.م. (ج. پلنډې) ۱) پیټی، پنډه، وځه، پنډ، وځکی؛ ۲) د اسباب غوټه.

**پلنډي** (plánḍi) ص. نـر.م. (ج. پلنډیان) پنډي، جوالي، پنډوړونکی.

**پلن سری** (plansáray) نر.م. ۱) پارو، راشبـېل، هیم؛ ۲) ص. نـر.م. کم عقل، ناپوه؛ ۳) پلن سر واله.

**پلن ګوټی** (plangwáṭay) نر.م. منفرجـه زاویه، هغه زاویه چې ترنوي درجې زیاته وي.

**پلنوالی** (planwāláy) نر.م. بر، سور، عرض.

**پلني** (pálni) نـر.م. کالګیر، هغه پلنه تختـه چې موچیان د کار په وخت ترزنګون لاندې نیسي.

**پلنېدل** (planedál) مـص. ل. ۱) غـورځېدل، په ځمکه غـورځېدل؛ ۲) ویـرېدل؛ ۳) ځـربېدل؛ ٤) شله کېدل، خری کېدل، متېه کېدل.

**پلو** (paláw) نـر.م. (ج. پلـوونه) ۱) د ځادر پیڅه؛ ۲) طرف، لوری؛ ۳) څنډه، اړخ، د خیمې برده؛ ٤) ننګه، لوری، پلوي؛ ۵) و ګ. پلاو.

**پلوابنه** (palwāṣ́a) ښځ. م. ۱) پلگوابنه، پلوشه، عوراشه، گوتمه، چپراس؛ ۲) خېل، خاندان؛ ۳) زنځير، زولنه؛ ٤) د پرتوگ ابن غوټه.

**پلوالی** (palwālə́y) نر. م. بخښنه، ښښنه، عفوه، ورتېرېدنه.

**پلوځه** (paloʒ́á) ښځ. م. (ج. پلوځې) ژرگه، زلزله، اغزنه ونه- يو ډول ونه ده.

**پلوځکي** (plóʒki) ښځ. م. ښخاري، ميخاري، هغه پيچې چې د مېږو او وزو په ښنو او لم پورې ځړېږي.

**پلودل** (plodə́l) مص. مت. ۱) ناپ کول، اندازه کول، مېچ کول.

**پلور** (plór) نر. م. ۱) بيه، ارزښت؛ ۲) خرڅلاو.

**پلورل** (plorə́l) مص. مت. خرڅول، په بيه ورکول.

**پلورليک** (plórlik) نر. م. قواله (قباله)، د پلور (خرڅلاو) سند.

**پلورنځی** (ploránǰay) نر. م. دوکان، هټۍ، هتۍ.

**پلورنه** (plorána) ښځ. م. (ج. پلورنې) خرڅونه.

**پلورونکی** (plorūnkáy) فا. نر. م. خرڅوونکی.

**پلوری** (plóray) ص. نر. م. سوداگر، تجار، تاجر.

**پلورينه** (ploriná) ښځ. م. (ج. پلورينې) خرڅلاو، خرڅېدنه، پلورنه، خرڅونه.

**پلوړه** (ploṛá) ښځ. م. دهلېز، کوشکن، کفش کن.

**پلوشه** (palwašá) ښځ. م. ۱) ځريکه، ځېره، د لمر راختو په وخت سره شغله؛ ۲) شعله؛ ۳) نور، تجلي، وړانگه.

**پلوشين** (plwašín) ص. نر. م. وړانگن، وړانگين، مشعشع.

**پلوښه** (palwáṣa) ښځ. م. و. گ. پلوابنه.

**پلوغوټه** (plaw ğūṭá) ښځ. م. ۱) دوواده، سنتي يا د خوښي د مبارکۍ لپاره چې خپلوانې راغلي وي د بهر ته تگ په وخت کې مېوه، جامې او ... چې له ځان سره يې وړي وي دې ته پلوغوټه وايي؛ ۲) هغه روپۍ چې زوم يې د لومړنۍ ليدنې په وخت خپلې ښځې ته ورکوي؛ ۳) هغه روپۍ چې د پلار يا ورور له خوا خپلې خورلڼي ته د واده په ورځ په پلو پورې ورغوټه کېږي.

**پلول**(۱) (plawə́l) مص. مت ۱) ښښل، بخښل، معاف کول؛ ۲) خصي کول؛ ۳) ځگ منبل، غړکه شاربل.

**پلول**(۲) (palawə́l) مص. مت. قدم کول، په گام کول، ځمکه په قدمونو کچ کول.

**پلونډ** (palwáṇd) ص. نر. م. ځورب، غټ، چاغ، په غوښو پټ، پهلوان، غښتلی، تيار.

**پلونډتوب** (palwaṇdtób) نر. م. ځوربوالی، چاغوالی، تياروالی، پلونډتيا، پلنډوالی.

**پلونيا** (palawniyā́) ښځ. م. فلونيا، يو ډول يوناني ترکيب (معجون).

**پلوۍ** (palawə́y) ښځ. م. ۱) مستوره نجلۍ، مخ پټې ښځه، په ستر کې ناسته جلکۍ.

**پلوی** (paláway) نر. م. ۱) چرمباز، ترمباز، هغه غويی چې په غوبل کې باندې طرف ته تړل شوی وي؛ ۲) طرفداري، پلوکونه؛ ۳) يو ډول توت؛ ٤) ص. نب. و. گ. پلويز.

**پلوي** (paláwi) ص. نر. م. ۱) گاونډي، همسايه، پلوان شريک؛ ۲) طرفدار.

**پلويز** (palwíz) ص. نر. م. ملگری، پلوي، حامي.

**پله**(۱) (plá) ښځ. م. (ج. پلې) وجه، پښته، وربه، د انسان او ځيوان په وجود کې سپين او کلک اعصاب.

**پله**(۲) (pála) ښځ. م. (ج. پلې) ۱) چاپېری، د تلې يوه پله؛ ۲) په لوری، پلو؛ ۳) د دروازې تمبه.

**پله ايلی** (palailáy) ښځ. م. يو ډول هېلې.

**پله پسې** ( palapā́se ) ق. پرلپسې، پرله پسې، یو په بل پسې، په یو مخ، مسلسل.

**پله پورې** ( palapóre ) ص. نب. نښتی، متصل، پیوست، پرله پورې، جوخت.

**پله تیږه** ( palā́tiẓa ) ښځ.م. رژېدونکې تیږه، دوړېدونکې تیږه.

**پلی**[1] ( pā́lay ) ص نر.م. (ج. پلي) ۱) پیاده، څړه، په پښو روان ۲) نر.م. پیاده عسکر؛ ۳) یو ډول کب؛ ٤) نر.م. ممپلی؛ ٥) د لوبیا، میو او ... پلي؛ ٦) دانګورو د لښتو هغه ګیډۍ چې تر پرېکولو وروسته تړل کېږي؛ ۷) د سپارې پال، کرکۍ.

**پلۍ**[2] ( plā́y ) ښځ.م. ۱) کیلي، کنجي؛ ۲) نوسي؛ ۳) سسپار.

**پلۍ** ( palā́y ) ښځ.م. ۱) د ارټ د ګرځولو لرګی؛ ۲) ګراړۍ؛ ۳) کرنډۍ؛ ٤) و ګ. پولۍ.

**پلېپل** ( palepā́l ) نر.م. پایلی، پاپۍ، پالی، پاپېل، د ماشوم اول اول قدم اخیستل.

**پلیت** ( palit ) ص. نر.م. ۱) مردار، ګنده، ناپاک؛ ۲) بدعمله، بدکرداره؛ ۳) ناولی، بېلمانځه.

**پلېټکه** ( pletā́ka ) ښځ.م. ۱) پلته، پیلته، باتۍ؛ ۲) لمبه، شغله.

**پلیتول** ( palitawā́l ) مص. مت. ۱) ناپاکول، مردارول؛ ۲) بېلمانځه کول، ناولی کول؛ ۳) بدعمله کول؛ ٤) ورانول، بداخلاقه کول.

**پلیتونی** ( palitónay ) نر.م. هغه لرګی چې مالوچ او وړۍ پرې تاوېږي.

**پلیته** ( palitā́ ) ښځ.م. (ج. پلیتې) ۱) پلته، د ډیوې یا لالټین باتۍ؛ ۲) شوته، توکه، د جوارو شوته؛ ۳) کڅوره، هغه کڅوره چې د مړي د پرېمنځلو په وخت کې لاس ته وراغوستل کېږي.

**پلیتېدل** ( palitedә́l ) مص. ل ۱) مردارېدل، ناپاکه کېدل؛ ۲) بدعمله کېدل، بدفعله کېدل.

**پلېټ** ( paleṭ ) نر.م. ۱) بشقاب، غاب، نالبکی؛ ۲) خوراک؛ ۳) د موټرو لمبر (نمبر پلېټ).

**پلېټن** ( pleṭán ) نر.م. پټیلن، د جولا هغه لرګي چې تنسته ترې تاووي.

**پلېکو** ( plekū́ ) ښځ.م. و ګ. پایکو.

**پلي کول** ( plikawā́l ) مص.مت. ترسره کول، عملي کول، تطبیقول.

**پلېل** ( plel ) جن. ۱) پیلیل، خوشبویه تېل، روغن موی، ترغوړ، پولیل؛ ۲) پلیڅۍ.

**پلې لار** ( plelā́r ) ښځ.م. څړه لاره، د پلیو لاره، پیاده رو.

**پلېمن** ( plemán ) نر.م. و ګ. پلمن.

**پلېنه** ( plenā́ ) ښځ.م. و ګ. پلمن.

**پلېونه** ( plewā́na ) ښځ.م. پلېنه، پلېون، بایکړ، د مسواک ونه.

**پلیه** ( palyā́ ) ص.نب. پلې، پیاده، په پښو، څړه.

**پم** ( pā́m ) نر.م. ۱) خاربښت، پمنتوب، یو ډول جلدي ناروغي ده؛ ۲) دجوارو خوړې، دجوارو سبوس، د رشقې میده ګې یا ګل؛ ۳) پخه، د ګنجي د سر روتې؛ ٤) خخوزي.

**پمانی** ( pamā́nay ) نر.م. پمنکی، پمنې، پمنه، پونی، یو غرنی تریخ نبات دی.

**پمبه** ( pambā́ ) ښځ.م. ۱) خخوځکی، چوخانی، د څه شي ذره؛ ۲) خورې، توته؛ ۳) کربوسکه.

**پمبه چو** ( pambačó ) نر.م. پمبې چو، کالکه، وچه غوزه، د پنبې وچه غوزه.

**پمبی** ( pambā́y ) نر.م. ۱) پم، دجوارو خور، د ریشقې میده ګي؛ ۲) اخور، پاخور؛ ۳) تومبی، کرانی؛ ٤) تان.

**پمبي مشر** (pambaymăšar) نر.م. ۱) ميراخور، د توبلې مشر؛ ۲) داروغه، د سل چا د درمندوسو څاروکی.

**پمپ** (pámp) نر.م. ۱) د هوا پمپ، د باد ورکولو آله؛ ۲) بمبه، د اوبو بمبه، د اوبو کښلو آله.

**پمل** (pamál) نر.م. پېمل، اندازه کول.

**پمپول** (pampawál) مص. مت. ۱) هوا ورکول، له باده ډکول؛ ۲) اوبه ښکل، اوبه ايستل.

**پمپي** (pámpi) ص. نر.م. ۱) هوا ورکوونکی؛ ۲) نر.م. د ښځويو سپک شان گوړ گابی.

**پمفلېټ** (pámfleṭ) نر.م. پامفلېټ، وړه رساله.

**پمن** (pamán) ص.نر.م. ۱) پون، خارښتي، په پم اخته؛ ۲) خوار، نېستمن؛ ۳) بدبخت.

**پمنتوب** (pamantób) نر.م. پمنتيا، پمنوالی، خارښې لگېدنه.

**پمن کوړ** (pamankóṛ) نر.م. ۱) پېس، د برص ناروغي؛ ۲) خارښت، کهل، تخمور.

**پمن کورن** (pamankūrán) ص. نر.م. ۱) پمن چينجن، د پم په ناروغۍ اخته؛ ۲) ډېر خوار.

**پمنکی** (pamánkay) نر.م. پمنه، پونی، يو غرنی نبات دی، و.گ. پمانی.

**پمنول** (pamanáwal) مص. مت. ۱) د پم په ناروغۍ اخته کول؛ ۲) غريبول، خوارول.

**پمنېدل** (pamanedál) مص. ل. ۱) خارښت لگېدل، د پم په ناروغۍ اخته کېدل؛ ۲) خوارېدل.

**پمبچو** (pamečó) ښځ.م. و.گ. پمبه‌چو.

**پن**[1] (pán) نر.م. سفر، مزل، پند.

**پن**[2] (pun) نر.م. و.گ. پم.

**پنا** (paná) ښځ.ص. نر.م. ۱) پټ، غايب، له نظره پټ؛ ۲) ښځ.م. سيله، مرسته، امن، حفاظت؛ ۳) فنا؛ ٤) نری باران، پونی، پواره؛ ٥) ښځ.م. خړوبونه، پنه، اوبونه؛ ٦) پونه، اوبه شيندنه.

**پناځای** (panāǰáy) نر.م. د پټېدو ځای، د پناه ځای، د امن ځای، ژغورځای.

**پناغوښتنه** (panāǧoṣtána) ښځ.م. شوغوښتنه، پناخواهي.

**پناوړنه** (panāwṛána) ښځ.م. شوورنه، پناه گزيني، پناهنده گي، مهاجرت.

**پنجالی** (panjālay) ښځ.م. د ډول او پنايي لپاره پنجره غوندې ځای.

**پنجالی** (panjálay) ښځ.م. جغ، ژغ، يغ.

**پنجره** (panj(a)rá) ښځ.م. قفس، پنجره، د مرغيو ساتلو کېس.

**پنجغاښی** (panjǧáṣay) نر.م. ۱) پينځغښی، هغه حيوان چې پنځه غاښونه يې کړي وي؛ ۲) لرگين پنځه غاښيزه غاښور چې پټي جوړوي.

**پنجکی** (panjákay) نر.م. موټی، دستگير، د دروازې موټی.

**پنجه** (panjá) ښځ.م. ۱) منگول؛ ۲) دلاس او پښې گوتې او څېړ؛ ۳) ډوډۍ خوړلو آله؛ ٥) يوه خوله خبرې؛ ٦) يو څه وخت.

**پنجه بابا** (panjabābá) نر.م. پنجه پاو، کونيکبر، کنجيپوړ، کړانکيش، چنگاښ.

**پنجه خوړي** (panjaxūṛi) ص.نب. ډېر زيات، زښت ډېر، بې شمېره.

**پنجه گي** (panjági) ښځ.م. پنجه، د کارتوسود ايښودلو فلزي آله.

**پنچر** (pančár) ص. نر. م. سوری شوی ټاير.

**پنچرول** (pančarawál) مص. مت ۱) د پايپ نه باد ايستل؛ ۲) خوارول، نېستمنول، کريابول.

**پنچرېدل** (pančaredál) مص. ل. ۱) د پايپ باد ايستل کېدل؛ ۲) خوارېدل، نېستمنېدل.

**پنچم** (pančám) نر.م. مو. د اوو سُرونوله جملې نه پنځم سر دی چې د سرگم په وخت په «په» سره لنډیږي.

**پنچمی** (pančámay) ښځ.م. د میاشتې پنځم تاریخ.

**پنځ** (panǰ) نر.م. پیدایښت، خلقت، جوړښت.

**پنځ تکیز** (pınǰṭakiz) ص. نر.م. پنځه ډزی ټوپک، پنځه تکی ټوپک.

**پنځ څنډ** (pınǰcánḍ) نر.م. پنځه څنډی، پنځه گوټی، مخمس، پنځه کونجی.

**پنځ غښی** (pınǰğáṣay) ص. نر.م. هغه ښاروی چې پنځه غاښونه یې کړي وي.

**پنځ کابلیزه** (pınǰkāblizá) ښځ.م. د افغانستان د یوې پخوانۍ سکې نوم.

**پنځگون** (pınǰgún) نر.م. ۱) پنځه گون، پنځه گونې روپۍ؛ ۲) پنځگانه.

**پنځول** (panǰawál) مص. مت. ۱) پیدا کول، منځ ته راوړل؛ ۲) دجوال ډکول؛ ۳) بریالی کول؛ ۴) ډېرول، دوه چنده کول؛ ۵) آزادول، ارتول.

**پنځون** (panǰún) نر.م. طبیعت؛ پیدایښت.

**پنځه ډزی** (pınǰḍazáy) پنځډزی، پینډزی، کڼ غوړی، غوړ ورټوپک، غوگین، غوړین.

**پنځی** (panǰáy) ښځ.م. د کورتو اوچکې کڅوړه.

**پنځېدل** (panǰedál) مص. ل. ۱) پیدا کېدل، خلق کېدل؛ ۲) ډکېدل؛ ۳) بریېدل؛ ۴) ارتېدل.

**پنځیز** (pınǰíz) ص. نر.م. پنځگون، هغه شی چې له پنځوو واحدو څخه جوړ وی.

**پنځه** (pancá) ښځ.م. ۱) پوړپوړ؛ ۲) هغه وړوکي دیوال چې د نیم متر په اندازه لوړ او پلن وي.

**پند** (pand) نر.م. نصیحت، وعظ؛ ۲) دښمني، بدي؛ ۳) ص. نر.م. په څېر، غوندې؛ ۴) مکر، فریب، تگي؛ ۵) مزل، سفر، پن.

**پندانه** (pundāná) ښځ.م. د کرېسوسکې زړی، د مالوچو تخم، د پمبې تخم.

**پندرور** (pandrawár) ص. نر.م. شونډه ور، هغه څوک چې شونډې یې پړسېدلې یا غټې وي.

**پندوک** (pandúk) نر.م. غوټی، کلی، پونډک.

**پنده** (pánda) ښځ.م. غټه کولمه، ډوبی.

**پندی** (panday) ښځ.م. ۱) بشکه، پنډۍ، یو ډول خودرو یه سابه؛ ۲) شلګې، تبرگی، تبرزین؛ ۳) یو ډول نارو غي ده.

**پنډ** (panḍ) نر.م ۱) غوټه، مضبوط؛ ۲) څېر، لوار؛ ۳) لوی بند، لوی تړ؛ ۴) بنډبر، چقماق، پټاکی؛ ۵) ص. نر.م. غونډ، ټول؛ ۶) نر.م. وڅه، غوټه، وڅکی، هغه درونډ وزن چې انسان یې په شا یا په سر وړي؛ ۷) ورکوټی چاود، کوساتی، درغ.

**پنډار** (panḍár) نر.م. باندار، گڼه گوڼه، ازدحام، ډېر خلک، د څو کسو مجلس.

**پنډاره** (panḍārá) ښځ.م. ټولونه، هغه پیسې چې سازنده یې له خلکو څخه ټولوي.

**پنډال** (panḍál) نر.م. دوکانچه، هغه ځای چې جلسه یا غونډه په کې ټولېږي.

**پنډاو** (panḍáw) ص. نر.م. گرد، راغونډ، پنډ.

**پنډاور** (panḍawár) نر.م. په بنو پټ، په بڼکو پټ، هغه چرگوړی چې مرداري پخې او بڼکې یې غوړځولې وي.

**پنډاوو** (panḍawú) نر.م. ۱) لغړ چرگ، بې بڼکو چرگ؛ ۲) د مرغیو هغه بچیان چې لا بڼې پرې نه وي شنې شوې، (سیسوړی) سر چیچړ.

**پنډبکر** (panḍbakár) نر.م. اورتک، پنډ، چقماق، بکوره، د چقماق ډبره.

**پنډت** (panḍát) ص. نر.م. ۱) غټ، ډډو، پړسېدلی؛ ۲) سست، بې کاره؛ ۳) څوک چې موسیقي

يې په تيوريکه توگه زده کړې وي، خو عملاً څه نه شي کولای.

**پنډتوب** (panḍtób) نر.م. ۱) څوربوالی، پنډوالی، پنډنيت، غټوالی؛ ۲) ضخامت، پرېړوالی.

**پنډتون** (panḍtún) نر.م. پنډغالی، شپول، د څارويو د يو ځای کولو او ايسارولو ځای.

**پنډته** (panḍáta) ښځ.م. ټوکه، مسخره، ملنډه.

**پنډغالی** (panḍğā́lay) نر.م. ۱) شپول؛ ۲) هغه ځای چې څاروي په کې تولېږي؛ ۳) ډېره، حجره، مېلمستون؛ ۴) کمپ، باندهٔ؛ ۵) هغه څرمن چې څپليو ته يې د پوندو د چاودېدو د مخنيوي لپاره ورکوي.

**پنډکی** (panḍkáy) ښځ.م. ۱) پنکی، پټی، هغه پټی چې ملهم ورباندې لگېدلی وي او په زخم باندې اېښودل کېږي؛ ۲) هغه ميده دارو چې په زخم باندې دوړول کېږي.

**پنډگر** (panḍgár) نر.م. هغه څوک چې پنډ بکړي يا اورلوبې ... جوړوي

**پنډل** (panḍál) نر.م. ۱) پوله، بند، بريد، سور؛ ۲) پيکټ، سنگر، مورچه، څوکۍ؛ ۳) کوټه، تودهٔ، سرپرانه.

**پنډو** (panḍū́) نر.م. گېه گوبه، عوبدهٔ، بولنه

**پنډور** (panḍawár) ص. نر.م. پنډې وز، غټ پوېدی، پنډې ور، غټ، څوړ.

**پنډوره** (panḍūrá) ښځ.م. کندوه، د علې خای نرته، ايکونه.

**پنډوس** (panḍós) نر.م. ۱) غنډوس، توپ، گېن؛ ۲) ص. نر.م. غټ، څورب؛ ۳) سست.

**پنډوسکه** (panḍoská) ښځ.م. غنډوس، توبکی، سرپ، پنډوس، پينډوس، پنډوسکی.

**پنډوسکی** (panḍū́skay) نر.م. هغه غنډوسکی

چې په تېلو لړل شوی وي او د برات په شپه يې کوچنيان لگوي او بيا يې پورته غورځوي.

**پنډوک مار** (panḍūkmā́r) ص. نر.م. ۱) پنډې جوالی، پيټوارۍ؛ ۲) غلاگن، غلچکی.

**پنډوکی** (panḍū́kay) نر.م. پنډوکي، وړوکی پنډ، ورکوټی پنډ، وړه غوټه، وڅکی.

**پنډول** (pandáwal) مص. مت. ۱) غونډول، ټولول، راغونډول؛ ۲) څربول، چاغول؛ ۳) ضخيمول.

**پنډولگر** (panḍūlgár) ص. نر.م. د پنبې مزدور، هغه څوک چې په مزدورۍ پنبه ټولوي.

**پنډولي** (panḍū́li) ښځ.م. پنډولی، د مېوې او د پنبې د ټولولو مزدوري.

**پنډولی** (panḍūláy) ښځ.م. جولی، ځولی، جلی، گوبلی، هغه څادر چې پنبه په کې راټولوي، د مېوې يا د وښو راټولولو ځولی.

**پنډون** (panḍū́n) نر.م. د څارويو يوه ځای ته راټولول.

**پنډه**[(1)] (panḍá) ښځ.م (ج. پنډې) ۱) پنډکی، غوټه ۲) خيرات، صدقه؛ ۳) چم وړل، خاوره په بالټې کې وړل؛ ۴) ډډون، پړسوب؛ ۵) گرمه او سپنه.

**پنډه**[(2)] (punḍá) ښځ.م. پينډهٔ، ټول شوي مېلمانه، مېلمانه چې په يوهٔ ښانک سرهٔ راټول شوي وي.

**پنډی**[(1)] (punḍáy) ښځ.م. سپينه، پونډی، لنگی، لېنگی، د پنبې د زنگانه او ښنگرې ترمنځ برخه.

**پنډی**[(2)] (panḍáy) ښځ.م. د نيزې څوکه، د سانگې څوکه، د بلې څوکه.

**پنډی**[(3)] (p(u,a)nḍáy) ښځ.م. ۱) يوډول سابه دی؛ ۳) دلرگي صندوق.

**پنډي** (pánḍi) ص. نر.م. جوالي، مالي، حمال.

**پنډېدل** (panḍedál) مص. ل. ۱) غونډېدل، څاروي يا خلک يو ځای راټولېدل؛ ۲) ضخيمېدل؛ ۳) چاغېدل، څربېدل؛ ۳) آرامېدل.

**پنډېرک** (pandérák) نر.م. پنېرک، کارګه، يو ډول سرانې ـ ګ دي.

**پنډېرى** (panderáy) نر.م. ۱) پوزى، انډېرى، پوزکى؛ ۲) د مزرو نه جوړه ترټه، پرېږى.

**پنډيور** (pandewár) ص.نر.م. پنډياور، غټ پنډى، ثورب، پنډالي.

**پنډې وريجې** (pandewrijé) ص. ښځ.ـ. غټې وريجې.

**پنس** (pins) نر.م. ۱) يوه طبي اله چې امور ته ورته ده؛ ۲) د د شلينګ دوولسمه برخه.

**پنسرى** (pansáray) نر.م ۱) راشبېل، خوى، پارو؛ ۲) تار، سپنسى.

**پنسل** (pinsál) نر.م. قلم، د ليکلو وسيله ده.

**پنګ** (pang) نر.م ۱) نرى اواز؛ ۲) د مچانو، مرغيو دوزرو غږ؛ ۳) رنګ.

**پنګ پانګ** (pingpāng) نر.م. پينګ پانګ، د يوې لوبې نوم دى.

**پنګلى** (pangaláy) ښځ.م. پنګى، پونګى، پونګلى د اوربشې شنه ډنډر نه د تولى په ډول اواز باسي ۲) سرنا، سرنى.

**پنګن** (pangán) ص. نر.م. ۱) بې عزته، د پونې نه ويسنلى؛ ۲) ژړند، ژړندوک.

**پنګول** (pangawál) مص.مت. ۱) بونګول، سرنا غږول؛ ۲) د شپېلى ډوله الې نه يو خـ ص اواز ايستل.

**پنګوين** (pángwin) نر.م. يو راز مرغه دى چې پښې يې پردې لري او وزرونه يې لنډ دي.

**پنګه**[1] (pungá) ښځ.م. پنګى، غونځک، يو ډول مېوه چې مغز (چعزى) لري.

**پنګه**[2] (pangá) ښځ.ـ. ۱) هغه لـه اوبو ډکه ځک کانال او نهر چې په هوار ځمکه او يا ځنګله کې ډېر ژور تللى وي؛ ۲) و.ګ. پانګه.

**پنګه وال** (pangawál) نر.م. و.ګ. پانګوال.

**پنګه ور** (pangawár) ص.نر.م. و.ګ. پانګوال.

**پنګى** (pangáy) ښځ.م. ۱) پنګه، يو ډول غونډه مېوه چې مغز لري؛ ۲) پخه، سرنا؛ ۳) پونګې، د دروازې چوړ؛ ٤) د بنجارګى سامان؛ ٥) هواره شبله، مانده، بې ډېرې خوړ؛ ٦) امسا، لکړه.

**پنګى** (pangáy) نر.م. ۱) پريز، منجله، منجيله؛ ۲) د زخم پټى.

**پنلټي** (pinálti) ښځ.م. پينالتي؛ د فوټبال په ... کې ګول سره نږدې د خلاف ورزي.

**پنه** (pána) ښځ.م. د سپين کاغذ يوه ټـه.

**پنى** (pánay) نر.م. يو ډول غرنى خوشبويه وابنه.

**پنې** (páne) ښځ.م. د سوچنو زرى مخه، د پنې زرى مخ، د پنې د زر تارو مخ.

**پنى** (panáy) ښځ.م. زري قيطان، ليث، کنارى.

**پنېر** (panér) نر.م. پوڅه، له تازه شيدو څخه جوړه شوې پوڅه، او له پخو شيدو څخه هم په خاصه طريقه لاس ته راځي.

**پنېرمايه** (panermāyá) ښځ.م. خمزورى، سيلى، شلا، هغه څه چې د هغه په واسطه پنېر جوړېږي.

**پنېري** (páneri) ص. نر.م. هغه چاقو چې د ګلانو پرېکولو لپاره کار ورځنې اخيستل کېږي.

**پنيز** (pániz) نر.م. فانوس، پانوس، قنديل، يو ډول څراغ دى.

**پنيک** (pánik) نر.م. وېره، وحشت، ساه، وهم، نرس، ډار.

**پڼ** (páṇ) ص. نر.م. ډک، ترخولې ډک، ترغاړو، موخه.

**پڼاکى** (puṇáki) نر.م. ورتل، د ځناورو تو... د ځناورو ترپکې، پڼاکې وهل.

پناو (panāw) نر.م. ۱) مسابقه، د غره، کانکور؛ ۲) داوطلبي، دوهل.

پنسي (pánsay) نر.م. تار، سپنسی.

پنکېدل (pankedə́l) مص. ل. ځلېدل، برېښېدل، پرکېدل، پرقېدل، چرکېدل.

پنل (p(a,u)ṇál) نر.م. زړی، خسته، مندکه.

پنوځای (poṇūjā́y) نر.م. د موچنو ځای، د څپليو يا بوټو د کارلو ځای.

پنول (paṇawál) مص.مت ۱) اوبه کول، اوبه ورکول. اوبول، پبه کول، خړوبول: ۲) زړي ماتول، مندکه ماتول، د خستې مغز ايستل.

پنه (paṇá) ښځ.م. ۱) موچنه، مچنه، دکی، يو ډول زري يا خرمني پېزار؛ ۲) د بورې شربت؛ ۳) اوبونه، خړوبونه؛ ٤) اوبه شيندنه، شننه، آبپاشي؛ ٥) ص. نب. تول شوي، پنډ شوي.

پنه ونه (paṇawáṇa) ښځ. م. زور، قدرت، طاقت، توان، سبک، توانايي.

پو[1] (pū) نر.م. پف، پوکول، چف کول، دم.

پو[2] (pó) ص.نب ۱) وګ. پوه؛ ۲) ښځ.م. د مګر تر مياشتې وروسته د هندي مياشتې نوم.

پوار (pūwā́r) نر.م. نري باران، ښورمک.

پواړ (pūwáṛ) ص. نر.م. ۱) خيرن، خچن، ناولي؛ ۲) بې هره؛ ۳) بې سليقې؛ ٤) ساده سړی.

پوپ تني (pūptánay) نر.م. ملاچرګک، ګډی چرګ، ملاګډی، کوکوپښی، پوپوګک.

پوپک (pūpák) نر.م. پوفک، د مرغۍ وېشتلو يو ډول نيچه.

پوپکه (pūpáka) ښځ.م. ۱) تپاکه؛ ۲) پړسوب.

پوپل (popál) نر.م. ۱) د يو ګل نوم؛ ۲) د پښتنو د يوې قبيلې نوم.

پوپنا (pūpanā́) ص. نب. تباه، برباد، ورک.

پوپو (pūpó) ښځ.م. ۱) ترور، د پلار خور، د مور خور (خاله)؛ ۲) اګو، مشرې ښځې ته د عزت په ډول ويل کېږي.

پوپی (pūpáy) نر.م. ۱) ښاپېرک، ماښام ځکلکی ۲) تاتکه، يو ډول واښه چې ژاوله ترې جوړېږي ۳) يو ډول سپين ګل.

پوت (pūt) نر.م. ۱) لمڅی، نيڅی، کوڅی؛ ۲) زوی، بچی، زمنکی، زمنګی.

پوتاش (potā́š) نر.م.ج. پتاس، کرينات ډوسوړ د لرګيو له ايرو نه لاس ته راځي، محرق پتاس.

پوتړه (pūtṛá) ښځ. م. د کوچني دبولو د پاکولو چيره.

پوتکی (pūtakáy) ښځ.م. غوړه، بندی، غاړکی، د ښځو د غاړې ګاڼه.

پوتل (pawtál) نر.م. پرخوړه، تفاله، توپاله، پوسه، ګيچه.

پوتلی (pūtláy) ښځ.م. د لرګو هغه ناوکی چې د تار په وسيله سره څرخېږي يا ګډېږي.

پوته (pūtá) ښځ.م. د غوايي د څرمنې ننئي برخه، د غوايي د څرمنې داخلي برخه.

پوتی (pūtáy) ښځ.م. د يادښت کتابچه، د يادښت کتاب، د حسابي چارو کتاب.

پوټ (pūṭ) نر.م. ۱) غم، مصيبت؛ ۲) مجلس، غونډه؛ ۳) پوټکی، پټخی، د ونې پوستکی؛ ٤) څرمن، پوست، ژون.

پوټک (pūṭák) نر.م. يو ډول ګرد او غونچه واښه.

پوټکی (poṭákay) نر.م. ۱) پوستکی، څرمن، پوست، وژن، پوټخی؛ ۲) د خاورو وړه غونډی، د خاورو ورکوټې توپی.

پوټونې (pūṭū́ne) ښځ. م. پتيونې، مورچه، ښارن ځای، په څوکې يا مورچل کې د ناستې ځای.

**پوټی**[1] (póṭay) نر.م ۱) دخاورو غونډۍ، د خاورو ټېپۍ، د خاورو پانړ، د خاورو پوښته؛ ۲) مېرې خاورې، میده او گرده خاوره.

**پوټی**[2] (pū́ṭay) ص. نر.م. ۱) لېږشان، پوټسکی؛ ۲) نر.م. دوډۍ خځوزی؛ ۳) د رخت ټوټه، لته، ځیره، لټوره، لیتاړه؛ ٤) کوچنی صندوق.

**پوټین** (póṭin) نر.م. هغه بوټ چې ساق یې تر بجلکې پورې رسېږي.

**پوجا** (pūjā́) ښځ.م. ۱) عبادت، پرستش، پرستښ؛ ۲) خوشامنده، پوجاپاټ.

**پوجاپاټ** (pūjāpā́ṭ) نر.م. ۱) عبادت، پرستش؛ ۲) پوجا، خوشامد، چاپلوسي، غوړه مالي.

**پوجي** (pū́ji) ښځ.م. گوډ، د پتی گوډ، خښاوه، للون.

**پوچ** (pū́č) ص.نر.م ۱) بد ژبی؛ ۲) سپک، بې ادبه، عبث فضول؛ ۳) نر.م. کوټې لوبه، گوټه، یوه لوبه ده؛ ٤) هغه چارمغز، بادام چې منځ یې خالي وي؛ ۲) تږس، هغه لرگی چې منځ یې خوړل شوی وي؛ ۳) بې نتیجې.

**پوچ اندی** (pūčānday) ص.نر.م. بد اندی، بداندېش، بد سگال.

**پوچ خولتوب** (pūčxwaltób) نر.م. پوچ خولتیا، فضوله غږېدا، چټی ږغېدنه.

**پوچغلی** (pūčğálay) نر.م. د پسونو، مېږو یو ډول ناروغي ده.

**پوچک** (pūčák) ص. نر.م. ۱) تش، بې مغزه، کم عقل؛ ۲) نر.م. د کارتوس تولی؛ ۳) فضول، خوشه تاړی؛ ٤) ټوټه، لږ شیز، ذره، ټوک.

**پوچکه** (pūčáka) ښځ.م. هغه هندوانه چې له گل څخه وروسته د ستي په جوړ نگ (جیلغ) پورې پیدا کېږي.

**پوچ ورد** (pūčorád) نر.ج. رد بد، چټیات، کنځا، کنځارې، کنځلې، زیاړې، زېږې.

**پوچول** (pūčawə́l) مص. مت. ۱) تېگل، پټهاکی، هغه ټوپک چې د کارتوس پټهاکی ووهي او کارتوس خلاص نه شي؛ ۲) بې نتیجې او بې حاصله کول؛ ۳) دوکول.

**پوچی** (pūčáy) ښځ.م. کله چې د ختکو او خربوزو پالېز لابښ شي، هغه کوچنی داني چې په جوړنگانو کې پاتې شي پوچی نومېږي.

**پوچې بوړې** (pūčeboṛe) ص. ښځ.م. خوشې خبرې، چټې خبرې، عبث خبرې.

**پوځ** (páwǰ) نر.م. فوج، فوځ، لښکر.

**پوځي** (páwǰi) نر.م. ۱) عسکر، فوجي، فوځي، سپاهي؛ ۲) تجربه کار، نظامي.

**پوڅکه** (pūcáka) ښځ. م. خام دانه، اومه دانه، پۍ دانه، کچه دانه، هغه دانه چې شیره وي.

**پوڅکۍ** (pūcakáy) ښځ.م. ۱) پڅکۍ، نرمۍ، دغوږ لاندینۍ نرمه برخه؛ ۲) خرډیگۍ، خرېړۍ، سماروق، ستورۍ.

**پوڅه** (pocá) ښځ.م. ۱) خام پنېر، پرنډ، پوچه؛ ۲) گیچه، تفاله، توپاله؛ ۳) چغجۍ، جغزۍ، گیچۍ، خوږه چرگۍ، دچارمغز، بادام او...مغز.

**پوڅۍ** (pocáy) ښځ.م. لېڅۍ، لڅۍ، د وړیو هغه گونجۍ چې په لاس کې د وریښلو لپاره جوړې شوې وي.

**پوخ** (póx) ص. نر.م. (ج. پاخه) ۱) رسېدلی؛ ۲) زوړ، هوښیار؛ ۳) ټینگ؛ ٤) غوریز، غوړه؛ ٥) مشروټ، پخنی، هغه ورکوټی ماشوم چې پخې خبرې کوي.

**پوخ څاښت** (poxcā́ṣt) ق. کچه غرمه، تنکۍ غرمه، د ټکندې غرمې نه مخکې وخت.

**پوخړه** (pūxṛá) ص. نب. وریت پریت، سوی لوغړن، کسکر.

**پوخلې** (poxále) ښځ. م. ټوخلې، شنه ټوخله، نوره ټوخله، توره غاړه.

**پوخنا** (poxnā́) ص. نر. م. پوخناتی، پوخ هلک، پخنی، هغه ماشوم چې پخې خبرې کوي.

**پوخوالی** (poxwā́lay) نر. م. پوختوب، پخوالی، پوختیا، مضبوطوالی، کلکوالی، ټینګوالی.

**پوخول** (poxawә́l) مص. مت. و ګ. پخول.

**پوخېدل** (poxedә́l) مص. ل. و ګ. پخېدل.

**پوخه** (poxá) ښځ. م. د خرمنې ورې ټوټې.

**پوده** (pūdá) ص. نب. ۱) وروست، خوسا، خراب؛ ۲) ښځ. م. تنسته، د کنې پنبه، پنبه.

**پودینه** (pūdiná) ښځ. م. ویلنکی، ایلنی، ویلنی. نانا

**پوډر** (poḍár) نر. م. پاوډر، ګرد، ګرز، رش، سفوف، هر شی چې پوره میده شي.

**پور** (pūr) نر. م. ۱) قرض، پیر؛ ۲) بدل، قصاص؛ ۳) تاوان، زیان؛ ٤) کلي، آبادي؛ لکه لعل پور ۵) زوی، بچی؛ ٦) وار، نوبت، برګ، د ګانې هغه کړایي چې شربت یې پوخ شوی وي؛ ۷) ردہ بوره، پخسه، پوړ؛ ۲) قات، کت.

**پوراینه** (porāyána) ښځ. م. ۱) پوره کول، بشپړونه؛ ۲) اداینه، پور بېرته ورکول.

**پورب** (poráb) نر. م. لمرخاته، ختیځ.

**پوربي** (pórbi) ښځ. م. ۱) د پوربیانو ژبه، پورب ته منسوب؛ ۲) په ختیځې کلاسیکې موسیقۍ کې یو ټاټ دی.

**پورتنی** (p(o,u)rtánay) ص. نر. م. ۱) پاسنی، باندېنی، پورته؛ ۲) د پورته سیمې اوسېدونکی

**پورته** (portá) ق. ۱) پاس، اوچت، بر، برہ، جګ، لوړ؛ ۲) په هوا کې؛ ۳) په مرتبه کې اوچت.

**پورته کول** (p(o,u)rtakawә́l) مص. مت ۱) راجګول (له کښته)؛ ۲) اوچتول، لوړول، ترقي ورکول؛ ۳) پارول، تحریکول، لمسول.

**پورته والی** (purtawā́lay) نر. م. ۱) اوچتوالی، جګوالی، ارتفاع؛ ۲) ترقي، پرمختیا.

**پورتې** (pórte) نر. م. ج. مو. حاملې کربښې، د موزیک په نوټېشن کې پنځه موازې کربښې دي چې ترمنځ یې څلور خالیګاوې دي.

**پورځل** (porjә́l) مص. مت. خبرې کول، غږېدل، ګنهېدل، رغېدل.

**پورژنی** (poržánay) ص. نر. م. ۱) مسافر، بې وطنه، پردیس؛ ۲) فراري، شړل شوی.

**پورغو** (porğū́) نر. م. غاړه شوی غویي، پړویغی، پل غو، پول غو، سیلی.

**پوروالا** (porwālā́) فا. نر. م. د پور څښتن، پور لرونکی، هغه څوک چې په چا پور ولري.

**پوروړی** (porawáṛay) فا. نر. م. قرضدار، مقروض، چې د چا پور باندې وي.

**پوررول** (porawә́l) مص. مت. ۱) پور کول، قرض کول، په قرض اخیستل؛ ۲) زباتل، زبادول، په چا خپله نېکي او احسان بارول.

**پوروونکی** (porawū́nkay) فا. نر. م. ۱) قرض کوونکی، قرض اخیستونکی؛ ۲) زبادوونکی، زباتونکی.

**پوروونی** (porawū́nay) نر. م. کتنغ، نګولی، لمدبل، پورې کوونکی (کتنغ).

**پوره** (pūrá) ص. نب. ۱) مکمل، کامل، بشپړ، تول، ثابت، ګرد؛ ۲) ختم، سرته رسېدلی؛ ۳) څوک چې چاته اړه نه لري.

**پوره یا سپوره** (porayāsporá) ښځ. م. پورې یا سپوره، لنډه یا وچه (دوډۍ).

**پوري** (póre) اد. ١) ترهغه، ته؛ ٢) ق. بند، تړلی، پوري؛ ٣) شروع، ابتدا؛ ٤) ښځ. م. خوا، د سيند يا سيند بله غاړه؛ ٤) ص. ب. ورسره، نښېږدي، جوخت؛ ٥) په وجه، په سبب؛ ٦) په ذمه، په غاړه؛ ٧) ربط، سره؛ ٨) د پريفكس په ډول هم راځي؛ لكه: پوري كول.

**پوري خوا** (porexwā́) ق. پوري پلو، پوري غاړه، د درياب بله غاړه، هغه خوا.

**پوري راپوري** (porerāpóre) ق. اخوا، دېخوا، هخوا دېخوا. پوري ووري.

**پوري كول** (porekawál) مص. مت. ١) پوري ايستل، پوري غاړې ته تېرول؛ ٢) بندول؛ ٣) لګول؛ ٤) نښلول؛ ٥) تپل؛ ٦) په كتغ پوري ډوډۍ خوړل، له نګوليي سره ډوډۍ پوري كول.

**پوري كېدل** (porekedál) مص. ل. ١) بلې غاړې ته تېرېدل، پوري وتل؛ ٢) اورلګېدل؛ ٣) ور تړل كېدل؛ ٤) تپل كېدل؛ ٥) اخته كېدل، مبتلا كېدل، په مرض اخته كېدل.

**پورېواته** (porewātá) نر. ج. پوري كېده، پوري غاړې ته تېرېده.

**پوري وتل** (porewatál) مص. ل. پوري غاړې ته تلل، د سيند يا سيند بلې غاړې ته تلل.

**پوري ووري** (porewóre) ق. ١) پوري راپوري، دواړه خواوې، اخوا دېخوا؛ ٢) اريان، حيران؛ ٣) ښكته پورته، كوز پاس.

**پوري وهل** (porewahál) مص. مت. ١) ديكه وركول؛ ٢) له چا سره مرسته كول؛ ٣) غوړخول نسكورول؛ ٤) منډل.

**پوري ويستل** (porewestál) مص. مت. پوري ايستل، پوري باسل، پوري كول، د سيند بلې غاړې ته پوري باسل.

**پوړ**(١) (póṛ) ص. نر. م. ١) نيمه خام، كچه؛ ٢) نر. م. ښست، اساس. ښځ. ٣) الوتې او پلنې پوزې؛ ٤) د ګېي پوګ. د ګنې تفاله؛ ٥) څمسوتې، ژنی؛ ٦) دا كليمه د زوړ او سوړ سره د تابع مهمل په ډول راځي چې د هر زيات مانا وركوي.

**پوړ**(٢) (pūṛ) نر. م. ١) طبقه، مرتبه، منزل؛ ٢) صف، قطار؛ ٣) بوس، پروړه؛ ٤) د مېچنې پل.

**پوړا** (pūṛā́) ص. نر. م. ارام، ډاډه، مطمئن، متيقن، ټينګ، په ځان ويسا لرونكی.

**پوړاينه** (pūṛāyə́na) ښځ. م. ډاډ، ډاډينه، په ځان ويسا لرنه، په ځان اطمينان لرنه.

**پوړپ** (pūṛp) نر. م. شډل، په طبيعي ډول زرغون شوی، خود رويه.

**پوړپه پوړ** (pūṛpapū́ṛ) ق. منزل په منزل، پټ په پټ، طبقه په طبقه.

**پوړده** (poṛdá) ص. نب. ١) ډاډه، په اطمينان؛ ٢) پورده، ذمه وار، مسوول.

**پوړنده** (pūṛə́nda) ښځ. م. ١) ګرمه ايره، توده خاوره، توده شګه؛ ٢) پسته خاوره.

**پوړنده توب** (pūṛəndatób) نر. م. پوړنده تيا، پوړنده والی، د نرمي او ګرمي ايرې په څېر نرموالی درلودنه.

**پوړنده خاوره** (pūṛəndaxāwrá) ښځ. م. وچه او نرمه خاوره، وچه ميده او پسته خاوره.

**پوړنی** (poṛə́nay) ازروكی، ټيكری، ښځينه څادر.

**پوړو** (poṛū́) نر. م. ١) پاړوړدم، جادو، كوډې؛ ٢) ص. نر. م. چالاك، مكار، ټګ، برګ.

**پوړه**(١) (poṛá) ص. نب. ١) وګ. پوړا؛ ٢) ډاډه، مطمئن؛ ٣) نيم خام، نيم پخته؛ ٤) مراهق.

**پوړه**(٢) (pūṛá) ښځ. م. يمم، راشپېل، خوی، سېچه، ری، توږونی، پاكوونی.

**پوړی** (pūŗáy) ښځ.م ۱) مسرپوړی، پړاته، له اوړو شخه په غوړو کې پخه شوی ډوډۍ؛ ۲) پوړی، پړی، هغه پوډر چې په کاغذ کې تړل شوي وي؛ ۳) ینګه، ینجه، پړی لرونکې ببلچه چې دوه تنه کار وربانديې کوي؛ ٤) اندر پایه، درېه، زینه، پارسنګ؛ ۲) پاتکی، پټه، د درېې ډکی.

**پوړی پر پوړی** (puŗáyparpawŗáy) ښځ.م. درجه پر درجه، پرله پسې، یو بل پسې.

**پوړیز** (pūŗ íz) ص.نر.م ۱) پوړ ته منسوب، د پوړ؛ ۲) پېنځې لرونکی، پاتکې لرونکی.

**پوز** (p(ū,o)z) نر.م. عک. ژست، پوز غوره کول، ژست نیول.

**پوزمیر** (pozmír) ص. نر.م. پوزور، پیزور، غټې پوزې، [illegible] چې پزه غټه وي.

**پوز ورکول** (p(u,o)zwarkawál) مص. مت. عک. د یوې څېرې د غوره کولو لار ښودنه چې د عکس اخستونکي له خوا کېږي..

**پوزه** (póza) ښځ.م. ۱) پزه؛ ۲) ورسک، شونډ، د غره یا غونډۍ هغه راوتلې برخه چې د اوارې ځمکې خواته وي.

**پوزی**[1] (pūzáy) نر.م. (ج. پوزي) انډېری، بوریا، پوزکی (مصغر)، حصیر، پیزی، چتیایي.

**پوزی**[2] (pozáy) نر.م. مهار، نته، هغه مهار چې د اوښ پزې ته وراچول شوی وي.

**پوزیشن** (puzišán) نر.م. ۱) موقعیت، وضعیت، حالت؛ ۲) حیثیت؛ ۳) اندازه، طرز، نکته، خیال؛ ٤) شغل، عهده، منصب، مقام.

**پوژوهل** (pužwahál) مص. مت. پوکنول، پوژول، پوړول، پوړل، پونه کول، په خوله اوبه شیندل.

**پوړ** (puẓ) نر.م. ۱) پوړ، په خوله د اوبو یا بلې مایع پاشل؛ ۲) بخار.

**پوړل** (puẓál) مص. مت. پوژل وهل، پوژول، پوکنول، پوړول، په خوله باندې د اوبو یا بلې مایع پاشل یا پونه کول.

**پوړول** (puẓawál) مص. مت. پوژل، پوژول، پوړ وهل، پوکنول، په خوله د اوبو یا نورو مایعاتو شیندل.

**پوړی** (pū́ẓay) نر.م. یو ډول واښه چې د پیاز په ډول ښخ لري.

**پوس** (pūs) نر.م. چاغ حیوان، خورب څاروی.

**پوسپوسک** (pūsposák) نر.م. خړ رنګې حشره ده چې د بربد بوی ترې ځي، د ونې ابا.

**پوست** (post) ص. نر.م. ۱) نرم، ملایم؛ ۲) نر.م. مقام، مرتبه؛ ۳) نر.م. پوستکی، څرمن، ژون؛ ٤) د خولې پوستکی، قره قلي، پیخه؛ ٥) د کوکنارو تخم.

**پوستک** (posták) نر.م. د څرمنې توته، د پوست توته.

**پوستکی** (postákay) نر.م. ۱) پوست، پوستوکی، څرمن، وژن؛ ۲) قره قلي، د خولې پوست.

**پوستوالی** (postwā́lay) نر.م. نرموالی، نرمي، ملایمتوب.

**پوستول** (postawál) مص. مت. ۱) پوست کول، څرمن ایستل؛ ۲) مجازاً په بې انصافي سره له چا څخه مال او دولت شکول (اخیستل).

**پوسته** (postá) ښځ.م ۱) ډوده، د خاشخاشو غوټې د پوست اوبه، هغه اوبه چې د افیونو پر ځای یې څښي؛ ۲) عس. څو تنه چې د وظیفې د اجرا لپاره د خپل اصلي جزو تام نه بهر خپله دنده اجرا کوي؛ ۳) ډاګ، پست، چاپار.

پوسته خانه (postaxānā́) ښځ.م. داګخانه، چاپارخانه، پوسټ آفيس.

پوسته رسان (postarasā́n) نر.م. داګی، پوسته رسوونکی، هغه څوک چې پوسته وېشي.

پوستي (pósti) ص. نب. ۱) د پوستې، د پوستې مربوط؛ ۲) ص. نر.م. په پوستو عادت، افيمي (سړی)، ترياکي؛ ۲) کاهل، سست.

پوستېدل (postedə́l) مص. ل. پوست کېدل، له پوسته کېدل، کوتل کېدل.

پوستين (póstin) نر.م. د کوټ په څېر له وړينو پوستکو څخه جوړې شوې جامې.

پوستينچه (postinčá) ښځ.م. کوچنی پوستين، لنډ پوستين، واسکټ ډوله پوستين.

پوسکاوڼ (pūskāwáṇ) فا. نر.م. ۱) پوسکن، تښن؛ ۲) بې همته، ناراسته، بېکاره.

پوسکی (pūsákay) نر.م. پس پس، پس پسی، په غوږو کې د دوو کسو ترمنځ خبرې.

پوسکۍ (pūskáy) ښځ.م. تښ، پسکه، دمقعد له لیارې د معدې هوا د باندې وتل.

پوسل (posə́l) مص. مت. ۱) د لاسه کول، دلاسا کول، غوړول، پالل؛ ۲) د پمن ښاروي غوړول؛ ۳) پالل، ساتل؛ ٤) منبل، د بدن په کومه حصه باندې لاس تېرول.

پوسل توب (posaltób) نر.م. ۱) پوسل والی، دلاسا توب؛ ۲) د پمن ښاروي غوړونه؛ ۳) پالنه، ساتنه؛ ٤) منبل توب، منبنه.

پوسلونکی (pos(u)lūnkáy) فا. نر.م. ۱) پسولونکی؛ ۲) د کوټې چت پټوونکی.

پوسله (poslá) ښځ.م. (ج. پوسلې) پوصله، یوه درجه لرونکې آله ده چې د زاویو په تعیین کې کار ترې اخلي.

پوسن (pūsə́n) ص.م. ۱) کم عقل، ناپوه، احمق؛ ۳) دروغجن؛ ٤) دارن، وېرندوکی.

پوسنه (pūsə́na) ښځ.م. ۱) تسلي کول؛ ۲) د پمن ښاروي وړونه؛ ۳) پالنه، ساتنه؛ ٤) منبنه.

پوسه[۱] (posá) ښځ.م. پوڅه، پوګ، پوړ، تفاله، څڅبوکی، ګیچه.

پوسه[۲] (pūsá) ښځ.م. ۱) د شنې دونې مېوه چې خوړلو ته میده شي؛ ۲) د خوشایو سوټه.

پوسۍ (posáy) ښځ.م. پوڅۍ، د غوړ پوڅکۍ، د غوړ پېڅکۍ، د غوړ نرمۍ.

پوسی (pósay) ص. نر.م. ۱) پوسن؛ ۲) احمق، بې عقل، کم عقل، ساده.

پوش (póš) نر.م. ۱) جوړه، کمیس پرتوګ؛ ۲) پوښ، د یوه شي د ساتلو لپاره چې کښوړه یا مخ ورکړی شي.

پوش پوش (pošpóš) ص. نر.م. ۱) پوشاپوش؛ ۲) څیرې څیرې، دانګې دانګې.

پوشل (pošə́l) مص. مت. پټول، خوندي کول، راز ساتل.

پوښ (póṣ) نر.م. ۱) تکه، غلاف، خلته، پوش؛ ۲) جامې، کالي؛ ۳) د ناوې جوړه.

پوښاک (poṣā́k) نر.م. جامې، کالي، لباس.

پوښتل (p(o,ū)ṣtə́l) مص. مت. ۱) تپوس کول، پوښتنه کول، حال معلومول؛ ۲) د سوال ځواب غوښتل؛ ۳) په عذابول.

پوښتنپانه (p(o,ū)ṣtanpāná) ښځ.م. استعلام، د پوښتنې کاغذ، انګیټ، پوښتنلیک.

پوښتنلیک (poṣtánlik) نر.م. د پوښتنو لیست یا کتاب.

پوښتنه (pūṣtána) ښځ.م. ۱) تپوس، سوال، حال معلومونه، ګروهېرنه؛ ۲) د ناروغ پوښتنه، د

ناحوږ احوال پوښتل.

**پوښتول** (pūstwál) نر . م . شه نيږ ، نوی نيږ ، ويښته .

**پوښتونکی** (p(a,ū)stūnkay) فا . نر . م . تپوس کوونکی ، سوال کوونکی ، حال معلوموونکی .

**پوښته** (pūstá) ښځ . م ۱) و گ . پښته ؛ ۲) غونډۍ ، ډډه ، تپه ؛ ۳) نر . ج . پوښتنه کېده ، معلومات کېده .

**پوښتۍ** (pūstáy) ښځ . م . ج . ۱) د سينې د قفس هډوکی ؛ ۲) کوڅی . کنجی ، يو ډول وېښلی سر ؛ ۳) پښت ، نسل ، خېل .

**پوښتېدل** (pūstedál) مص . تپوس ترې کېدل ، خواب غوښتل کېدل .

**پوښښ** (posás) نر . م . پوشش ، د کوټې چت پټول .

**پوښل** (posál) مص . مت . ۱) پوشل ، د کوټې چت پټول ، کوټه پټول ؛ ۲) پټول ، پوښ ورکول .

**پوښنه** (posána) ښځ . م . پوښنگ ، پوشنه ، پټونه ، پوښ کونه .

**پوښول** (posawál) مص . مت . ۱) پوشول ، پوښ ورکول ؛ ۲) پټول ، پوښ ورکول .

**پوښه** (posá) ښځ . م . هغه لرگی چې لمونځ کوونکی يې د لمانځه په وخت خپل مخ ته دروي . ستره .

**پوغله** (pogla) ښځ . م . ډاسه ، بول ، پيغولي ، د نوي پيدا شوي ورغومي يا گډوري نرمې بولې .

**پوک** (pūk) نر . م . ۱) پوگ ، پوس ، تفاله ، گيچه ؛ ۲) ص . ډډ ، ، مجوف ، منځ خالي ؛ ۳) پوکی ، پف ، پو ؛ ٤) ص . نر . م . احمق ، سپک ، بې مغزه ، چتي ، خوشې .

**پوکاره** (pūkārá) ښځ . م . پوکی ، پو ، پف ، اورته ورپوکل ، تاوده شي ته ورپوکل .

**پوکانه** (pūkāná) ښځ . م . ۱) حباب ، کوبی ، خوړنی ، غوټی ، پوکانی ؛ ۲) مثانه ؛ ۳) بوغی ، پوقانه .

**پوکانۍ ډبره** (pūkānaydabára) ښځ . م . د مثانې ډبره ، د مثانې تيږه .

**پوکړی** (pūkáray) مف . نر . م . ۱) ډډ شوی ، له باده ډک شوی ؛ ۲) لمسول شوی ، په قار کړی .

**پوکل** (pūkál) مص . مت . پوکول ، هوا ورکول ، باد ورکول ، له باده ډکول ، له هوا ډکول .

**پوکنانۍ** (pūknānáy) ښځ . م . ۱) حباب ، کوبی ، بوربوکی ؛ ۲) مثانه ، د بولو کڅوړه .

**پوکنۍ** (pūkanáy) ښځ . م . ۱) کوبی (حباب) ؛ ۲) د الوزولو پوکنۍ ، متيازاړی .

**پوکی** (pūkáy) نر . م . ۱) پوکاره ، پف ، پو ، پوپ ؛ ۲) د خولې هوا يا باد .

**پوکېدل** (pūkedál) مص . ل . ۱) له باده ډکېدل ، له هوا ډکېدل ؛ ۲) سوځېدل .

**پوگ** (pog) نر . م . و گ . پوک ۱) .

**پول** (pūl) نر . م . ۱) پل ، په وياله ، او سيند باندې د تېرېدو راتېرېدو لاره ؛ ۲) د افغاني پيسو د واحد ( يوې افغانۍ ) سلمه برخه .

**پولادي** (polādi) ص . نب . ۱) له پولادو څخه جوړ شوی ؛ ۲) ټينگ ، کلک ، مقاومت لرونکی ؛ ۳) د يو ډول رنگ نوم دی .

**پول پولک** (pūlpūlák) نر . م . يو ډول تريخ بوټی دی چې په جلدي ناروغيو کې کارېږي .

**پولک** (pūlák) نر . م . هغه مېخ چې په کونده کې د پالې د ټينگولو لپاره ورکول کېږي .

**پولکی** (pūlkáy) نر . م . ۱) په تناره پخه شوې د غنمو ډوډۍ ؛ ۲) د تناره سيخ ، د ډوډۍ بېلوونکی .

**پولگی** (pūlgáy) نر . م . وړوکی پول ، پلچک .

**پوله**[1] (pūlá) ښځ . م . ۱) بريد ، سرحد ، څېره ، بند ، تک ؛ ۲) د پټي موړه ؛ ۳) نر . م . و گ . پولی .

**پوله** (۲) (polá) ښځ.م. ۱) د سترګې ګل، د سترګې اوره؛ ۲) سست، پوده.

**پولۍ** (pūláy) ښځ.م. ۱) تناکه؛ ۲) نیني شوي جوار؛ ۳) د غنمو ګېډۍ، د ریشقې کوده؛ ۲) د ازغو کوټه؛ ۳) د ښځو هغه ویښته چې له سر څخه یې خېژي.

**پولی** (pūwálay) نر.م. ۱) پاولی، د ښځو یو ډول پسول دی؛ ۲) جولا، هغه څوک چې ټوکر اوبي؛ ۳) هغه ټوکر چې میچن پرې پاکوي.

**پولیپ** (poláyp) نر.م. لحمي بواسیر، سرطان، په بدن کې داني یا واړه پارسوب چې ممکنه ده سرطان منځ ته راوړي.

**پولۍ څپولۍ** (polaycápolay) نر.م. د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**پون** (pūn) نر.م. پم، خاربښت، خارش، پوم، یو ډول جلدي ناروغي ده چې ټول بدن خاربښت کوي.

**پونبرۍ** (pūnbŕáy) ښځ.م. ۱) پونبې په څېر هغه سپک څیز چې د بوټو په ښېخ پورې نښتي وي؛ ۲) سپک شی، کوچنی او ووړ شی.

**پونچۍ** (pūncáy) ښځ.م. د سپینو زرو غوټۍ چې ښځې یې په تار پیبي او بیا یې د ګاڼې په ډول په لاسو کې اچوي.

**پوندانه** (pūndāná) ښځ.م. د پنبې تخم، پونبه دانه، چګت، پندانه.

**پوند غلی** (pūndğálay) نر.م. پسکی، هغه ټوټه څرمن چې په څپلیو کې د پوندې خواته وراچول کېږي.

**پوندګلي** (pawandgáli) ښځ.م. پوندګلي، پونده توب، د کوچیانو ژوند، غویه توب.

**پونده** (۱) (pūndá) ښځ.م. د پنبې د بېډۍ لاندېنۍ برخه؛ ۲) د څپلۍ بند؛ ۳) د بوټ کوری، د بوټ پونده؛ ٤) د توري موټی.

**پونده** (۲) (pawánda) نر.م. ۱) پاونده، کوچر، غویه ۲) کوچیان.

**پونډ** (۱) (pūnḍ) نر.م. خفو، درګیر، خپه.

**پونډ** (۲) (páwnḍ) نر.م. و.ګ. پاونډ.

**پونډکه** (pūnḍáka) ښځ.م. سابه، ساګ، سبزي، په اور باندې پخې شوي بشکې.

**پونډۍ** (pūnḍáy) ښځ.م. پنډۍ، د پړکي شاته غوښه، د بیډیو د پاسه او د زنګانه لاندې د پنبې پسته او نرمه غوښه.

**پونګ** (pūng) نر.م. ۱) زېږنده، اولاد، پیدایش؛ ۲) د ملخانو بچي اچونه؛ ۳) د ژړا د پیل اواز.

**پونګاړی** (pūngāṛay) نر.م. د هګۍ دننه بچی، لاروا.

**پونګۍ** (pūngáy) ښځ.م. ۱) درمه، تولی، د سرنۍ ژبې، د غنم یا اوربشې د ډنډر دواړه سرونه چې پرې او یو سر یې چیت او پوه کړي شي یو ډول آواز ترې راوځي دغې آلې ته پونګۍ وایي؛ ۲) د غره په سر هواره ځمکه؛ ۳) د سوداګرۍ مال، د تجارت هغه مال چې په شا باندې یې ګرځوي؛ ٤) نر.م. نیچه، درمه، کرکی، دروزه یا کاغذ چې ګرد تاو شي او چرسیان د چرسو دود ورباندې راکاږي (راکشوي).

**پونه** (pūná) ښځ.م. پشمک، ښورمک، اوپاشي، نرۍ باران، لړې اوبه شیندنه.

**پوني** (pawnáy) نر.م. و.ګ. پماني.

**پوني** (pūni) ښځ.م. م. پوړ وهنه، پوژوهنه.

**پوڼ** (pūṇ) نر.م. ۱) پنډبکر، د پخوانۍ زمانې د اور لګولو یو ډول پنډبکر؛ ۲) ص.نر.م. ډډ، ګوګ؛ ۲) د سین یا لګو (خوړ) یوې خواته دخاو، ولمن (څنده)؛ ۳) پانډ، پاڼ.

پوناکه (pūṇākā) ښځ. م. د څناور تږپونه او ورتل، د څناورو ورتل یا پرېوتل.

پونکه (pūṇáka) ښځ. م. بړبوکی، خوږنه، حباب.

پونل (pūṇál) نر. م. د خوراک په وخت کې د څاروي سونهار.

پونول (pūṇawál) مص. مت. ۱) ډډول، تشول، گوگول؛ ۲) په ډېرو خبرو د چا تنگول.

پونه (pūṇá) ښځ. م. د آس تگ، د آس قدم.

پونۍ (pūṇáy) ښځ. م ۱) وگ. پوړۍ ۲)؛ ۲) پوسی، لېڅې، د وړیو هغه گونجې چې د وربشلو لپاره په لاس باندې راتاو شوې وي.

پونېدل (pūṇedál) مص. ل. ۱) په مېخ یا موږي باندې د څاروي پښې تکول؛ ۲) ډډېدل، تشېدل گوگېدل؛ ۲) په ډېرو خبرو تنگېدل

پووړه (powáṛa) ص. ښځ. م. پوواړه یا ناراسته، خیرنه، خچنه او سسته (ښځه).

پووندگلي (powadgáli) ښځ. م. څاروي ساتنه، پوونده توب، شپني، مالداري.

پوول (powál) مص. مت. پیول، څرول، څاروي د خوراک لپاره څرځای کې پیول.

پوونکی (powūnkáy) فا. نر. م. څروونکی، پووني، شپون، غوبه او خربه یا هغه څوک چې مالونه بیایي.

پوه[1] (poh) ص. نب. ۱) هوښیار، عاقل، ځیرک؛ ۲) د پوه میاشت، د یوې میاشتې نوم دی.

پوه[2] (pūwá) ص. ښځ. م. وتره (ځمکه)، نمناکه، زیمناکه (ځمکه).

پوها (pūhā́) اد. پها، پوهو، د تعجب او حیرانتیا کلیمه.

پوهاند (pohā́nd) نر. م. ۱) پروفیسر، استاد؛ ۲) وروستنۍ لوړه علمي رتبه چې د افغانستان د پوهنتونونو د استادانو لپاره ټاکل شوې ده.

پوهړ (pūháṛ) ص. نر. م. ساده، بې عقل، ناپوه.

پوهلنډی (pohlánḍay) ص. نر. م. لنډاکی، کم عقل، کوتاه فکره.

پوهمن (pohmán) ص. نر. م. هوښیار، پوه، دان، د پوهې خاوند.

پوهنتون (pohantūn) نر. م. دارالفنون، د علمي او لوړو تحصیلاتو موسسه، جامعة.

پوهنځی (pohánʒay) نر. م. فاکولته، د لیسانس اخیستلو علمي موسسه.

پوهند (pohánd) ص. نر. م. پوهه، هوښیار، پوهاند.

پوهندوی (pohándoy) نر. م. ۱) عالم، متخصص ۲) له پوهنمل نه جگه رتبه، د پوهنتون د استادانو څلورمه علمي درجه.

پوهنمل (pohanmál) نر. م. له پوهنیار نه جگه رتبه، د پوهنتون دریمه علمي درجه.

پوهنوال (pohanwā́l) نر. م. له پوهندوی څخه لوړه رتبه، د پوهنتون د استادانو پنځمه علمي درجه.

پوهنه (Pohána) ښځ. م. پویه، علمي پوهه.

پوهنیار (pohanyā́r) نر. م. له پوهیالی لوړه علمي رتبه، د پوهنتون دوهمه علمي درجه.

پوهنیز (pohániz) نر. م. د پوهنې اړوند.

پوهو (pohó) اد. پها، پهه، د تعجب او حیرانتیا کلیمه، د رشخند کلیمه.

پوهوالی (pohwā́lay) نر. م. هوښیاروالی، هوښیار توب، هوښیاري.

پوهوتلی (pohwatálay) مف. نر. م. د پوهې لټ، پوهېدونکی، هغه څه چې د هغه په اړه پوهېدنه ممکنه وي.

پوهول (pohawā́l) مص. مت ۱) پوه کول، لارښودل، په څه خبره څوک رسول؛ ۲) ملتفت کول.

**پوهوهو** (pohohú) اد. په، پها، پوهــو، پيهي، د حيرانتيا او تعجب كليمه.

**پوهه** (póha) ښځ.م. ۱) علم؛ ۲) عقل، فكر، شعور؛ ۳) د پوه مونث شكل.

**پوهيالى** (pohyā́lay) نــر.م. ۱) د پوهنتــون د استادانو لومړنى علمي درجه؛ ۲) ص. نر.م. د پوهې خاوند، پوهېدونكى.

**پوهېدل** (pohedál) مص. ل. ۱) علم لرل، پوهه لرل، مطلب ته رسېدل؛ ۲) ملتفت كېدل، ځير كېدل.

**په**[1] (pa) اد. ۱) د ظرف او آلې له اداتو څخه يو توري دى، يو ســربل دى– په كـور كې؛ ۲) اد. پرې، باندې، پاسه.

**په**[2] (pah) ښځ.م. ۱) پهه، مـرهـم، ملهم؛ ۲) كيږ، هغه كړك چې په مات ځاى ترلى شي.

**په بله ژبه** (pabalažába) ښــځ.م. په بله وينا، په بل عبارت.

**په پاى كې** (papā́yke) ق. تر ټولــو وروستــه، په آخر كې، په متې.

**په پټه** (papáṭa) ق. غلې، په غلا، له خلكو په پټه.

**په پسې** (papáse) ق. ورپسې، جوخت، متصل، مربوط، متوالي.

**په پورې** (papóre) ق. ۱) ورپورې، ورسره، جوخت؛ ۲) بله غــاړه، پورې خـوا؛ ۳) په امـان كې، په سيمه، په لمن كې.

**په پوهېدل** (papohedál) مص. ل. پرې پوهېدل، وربانديې پوهېدل، مطلب ته رسېدل.

**په ترخ كې** (patrácke) ق. پـه دې منځ كې، په دې كې (د خبرو په ترخ كې).

**په توگه** (patóga) ق. په ډول، په شان، په څېر.

**په تېره بيا** (patérabyā́) ق. په ځـانگـړي توگه، په خاص طور سره، په تېره تېره.

**په ټوپو** (paṭopó) ق. په ترپكو، په منډه، په گامو.

**په څنگ** (pacáng) ق. ۱) پــه اړخ، پــه څنــرمــه؛ ۲) يوې ډډې ته، يو اړخ ته.

**په څېر** (pacér) ق. په شان، غوندې، په رنگ.

**په حال** (pahā́l) ق. په سد، په واک، په فكر كې.

**په خپله** (paxpála) ق. خــپله، پخپله، پــه ځــان، ځاني، شخصي، شخصاً.

**په خوله** (paxwalá) ق. ۱) په ژبـه، په وينا؛ ۲) په خبرو، تقريري، شفاهي، قولاً، په قول.

**په درناوي** (padranā́wi) ق. پــه نمــانځــنه، پــه درنښت، په احترام.

**په دې څېر** (padecér) ق. په دې ډول، په دې شكل.

**پهر** (pıhár) نر.م. پيينه، پيوند، بې خوالي، (۱۸۰) دقيقې يو پهر كېږي.

**پهره** (pıhrá) ښـځ.م. ۱) پيــره، څـوكى، حفـاظت، نگراني، څارنه؛ ۲) گارډ؛ ۳) گزمه.

**پهره دار** (pıhradā́r) ص.نر.م. پيره دار، څوكيدار، نگراني كوونكى، څارونكي.

**پهړ** (pahár̥) ص.نر.م. سرزوري (آس)، هغه آس چې په كيزه كې نه راگرځي.

**پهړه** (pahr̥á) ښـځ.م. ۱) د جوگيانو لنډه امسا يا بينت؛ ۲) پړه، د ملنگانو د غاړې امېل.

**په زړه** (pazr̥á) ق. ۱) په ياد، په زړه كې، په حافظه كې؛ ۲) پر زړه، په ربښتيا.

**په زړه پورې** (pəzr̥əpū́re) ق. ۱) زړه ته نيږدې، گران، خوښ، دلچسپ؛ ۲) ياد، په زړه كې.

**په زړه كونه** (pəzr̥əkawā́na) ښځ.م. يادونه، زوتونه، ضبطونه.

**په زياته** (pəzyā́ta) ق. پر دې سربېره، په ډېره.

**په ستنه** (pəstaná) ق. ۱) واپس، بېـرته، دويم ځل؛ ۲) ښځ.م. قى، كانگې، گرځون.

**په شان** (pašā́n) ق. غوندې، مثل، په ډول، په شېر، لکه، په ډول.

**په ښه** (pašá) ق. په ګټه، په خير، په ښېګڼه، پکار.

**په غاړه** (pağāṛá) ق. ۱) په ذمه، پرې پورې، په حواله؛ ۲) اغوستې، په غاړه اغوستې.

**په کار** (pakā́r) ص. ۱) ګټور؛ ۲) د اړتيا وړ.

**په کارول** (pakārawə́l) مص. مت. استعمالول، په کار اچول، په کار راوستل.

**په کارېدل** (pakāredə́l) مص. ل. ۱) په کار کېدل، کړنې اخيستل؛ ۲) خوښېدل.

**په کډه** (pakaḍá) ق. په کوچ، په سفر، له خپل ماڼ سره له يو ځای نه بل ځای ته لېږدېدل.

**په ګڼه** (pagáṇa) ق. په شريکه، په جمع، په يو ځای، په ډېرو کسان.

**په لاس** (palā́s) ق. ۱) سمدستي، لاس په لاس؛ ۲) حاضر، موجود؛ ۳) نغد، نقد، په نغدو.

**پهلوان** (pahlawā́n) ص. نر. م و ګ. پالوان.

**په لوی لاس** (pahloylā́s) ق. په خپله خوښه، په قصدي ډول.

**په مټکي** (pamáṭke) ق. ۱) لږ غوندې، په مټې، پله؛ ۲) په ګرانه، په زيار، په تکليف.

**په مخه ښه** (pamaxaṣá) ښغ. م. خدای پاماني، رخصتونه، مخه ښه، په خدای سپارنه.

**په وار** (pawā́r) ق. په خپل وار، په خپل وخت، په خپله نښه، په خپل نوبت.

**په وار وار** (pawārwā́r) ق. ۱) سه لسېر، په خپل خپل وار؛ ۲) بيا بيا، مکرر، په څو ځلو.

**په ورو ورو** (pawrowré) ق. سوکه سوکه، کراره کراره، تکيه تکيه.

**په وړاندې** (pawṛā́nde) ق. په مخ کې، په نېز، په ضد، په خلاف.

**پهوره** (pahūṛá) ښغ. م. ۱) د جوګيانو امسا، د ملنګ نو ښينت، پهړه؛ ۲) ګن، پوره.

**پهوری** (pahūṛáy) ښغ. م. پهړه، پهوره.

**پهه** (pahá) اد. ښغ. م. په، ملهم، پټی.

**په ها** (pahā́) اد. پها، د تعجب له اداتو څخه دی.

**په هېر** (pahér) ق. په هېره، په غلطۍ سره، په ناپامي، په خطا سره، په تېروتنې.

**په ياد** (payā́d) ق. په يادو، په زړه کې، په حافظه کې، په خاطر کې، بې ليکنې.

**په يادېدل** (payādedə́l) مص. ل. ۱) په زړه کېدل، په زړه کې ګرځېدل؛ ۲) زده کېدل، حافظې ته سپارل کېدل.

**پهېر** (pahér) ق. په خبر، غوندې.

**پهېلول** (pahelawə́l) مص. مت. په زخم ملهم کښېښودل يا نور څه خوړول يا اوارول.

**پی** (páy) جن. ۱) شيدې؛ ۲) مستې؛ ۳) نر. م. تصرف، قبضه، ذمه، په واک کې؛ ۴) د ځمکې يوه خاصه اندازه؛ ۵) پرېکړه، قطعنامه؛ ۶) لرې اوبه؛ ۷) د درياب د پايا او اوبه؛ ۸) پل، منزل، قدم؛ ۹) پله؛ ۱۰) ښالمه، داوړو د پخولو پې.

**پې** (pe) ښغ. م ۱) د (پ) توري اوار؛ ۲) اد. ورباندې، پرې باندې، پرې، په.

**پياڅه** (pyā́ca) ښغ. م. ۱) د باجرې ډوډۍ، د ايډنو ډوډۍ، د جوارو ډوډۍ؛ ۲) د ګبين وږي يا ببوزي د ګبينه يو کندک؛ ۳) ښغ. م. سلندی، شينځه، په سر کې د وينېتو لاره؛ ۲) د اوبو پېرکند، په لښتي يا وياله کې د اوبو ننبه.

**پياخله** (pyā́xla) ښغ. م. ۱) پيالخه، چکن، يو ډول کښيده کاري؛ ۲) مفلر، د غاړې دسمال ۳) خوله راوستنه؛ خوله کول.

**پياده** (pyādá) ص. نب ۱) هغه چې په پښو پيدل ځي؛ ۲) په عسکرۍ کې يو مسلک دی؛ ۳) د دفتر د ساتلو او پاکولو موظف اجير.

**پياده رو** (pyādaráw) نر. م. د سړک غاړې ته هغه لار چې پلي کسان ورباندې تېرېږي.

**پيارژندي** (pyārẓ́ándi) ښځ. م. د شپې اوبه خور، د شپې اوبه لګونه، د شپې اوبخور.

**پيارغنده** (pyārġánda) ښځ. م. هغه خاوره چې د کېږدۍ او يا د خيمې څلورو خواو ته اچول شوې وي چې اوبه خيمې ته داخلې نه شي.

**پيارمه** (pyārmá) ښځ. م ۱) چېره، ريتاړه، خرڅوړی ۲) دخره، کچر کتې هغه تانګ چې په خېټې پورې يې کلکېږي؛ ۳) د کټ لنګه، د کټ کشه؛ ۲) د مچي، پاردوم.

**پيارمه خور** (pyārmaxór) ص. نر. م. ۱) لته خور (څاروی)، چيره خور؛ ۲) هغه ماشوم چې کالي ژر ژر څيري؛ ۳) هغه څوک چې د خپلې ګټې لپاره د چا حق پټ کړي.

**پيازکی** (pyāzákay) نر. م. غرنی يا ځنګلي پياز.

**پيازه** (pyāzá) ښځ. م. ۱) سپيازه، نقصان، هغه ښځه يا حيوان چې د وخت نه مخکې بچی واچوي؛ ۲) ص. نب. ضايع؛ ۳) ښځ. م. راز څرګندېدنه؛ ٤) اوم، خام.

**پياسه** (pyāsá) ښځ. م. ۱) خوړ، لګډ، د سېلاب لاره؛ ۲) د سيند تل، د درياب تل.

**پياشه** (pyāšá) ښځ. م. (ج. پياشې) اغېز، پدل.

**پياغله** (pyāġlá) ښځ. م. ۱) پياخله. رنځور خولې کول؛ ۲) ګلوبند، مفلر، د غاړې دسمال.

**پياګي** (pyāgi) ق. شا، وروسته، پسې.

**پيالخه** (pyālxá) ښځ. م. د تبې د تکيه کولو ځای چې په نغري پورې نښتې وي.

**پياله** (pyālá) ښځ. م. ۱) د چايو څښلو لوښی چې لاستی ولري؛ ۲) جام، د شراب څښلو پيمانه.

**پيام** (pyām) نر. م. پيغام، خبر، د چا له خوا بل چا ته د مطلب رسول.

**پيانده** (pyāndá) ښځ. م ۱) ګاړګوتی زلفې، تاوراتاو زلفې؛ ۲) ص. نب. ښکلې، ښايسته؛ ۳) هغه تارچې کبان په کې پېيل کېږي، هغه لښته چې نيولي ماهيان په کې اکبر کېږي.

**پيانو** (pyānó) ښځ. م. د موسيقۍ لـه آلو نه يوه آله ده چې پردې يې ارمونيې ته ورته دي.

**پيانيسټ** (pyānist) ص. نر. م. پيانو وهونکی، څوک چې د پيانو په غږولو کې مهارت لري.

**پياورکی** (pyāwárkay) نر. م. سپلمی، يو ډول بوټی دی چې سپينې پې کوي.

**پياوړتوب** (pyāwartób) نر. م. قوت، توان، طاقت، تکړه توب، پياوړتيا، غښتلتوب.

**پياوړی** (pyāwáṛay) ص. نر. م. تکړه، غښتلی، قوي، زورور.

**پياوی** (pyāwáy) نر. م. پنځونی، خځله، هغه سپک شيان چې د سېلاب د اوبو په سر روان وي.

**پيايل** (pyāyál) مص. مت. پوول، څروول، د څارويو څروول (پيول).

**پيپ**[1] (pip) نر. م. ۱) مېخکی، مېخک، بسير، د لونګ په شکل د پوزې يو ډول ګاڼه؛ ۲) تيم.

**پيپ**[2] (páyp) نر. م. و ګ. پايپ.

**پيپړۍ** (pipṛé) ښځ. م. ج. بړانګې، چچړې، د غوښې هغه برخه چې نه خوړل کېږي.

**پيپل** (pipál) نر. م. يوه ونه چې غټې او پلنې پاڼې لري او هندوان يې ډېر عزت او احترام کوي.

**پيپلی** (pipláy) نر. م. يو ډول اوږده مرچ دي چې په دارو کې کارېږي.

**پیپنۍ** ( pepnáy ) ښځ.م. کمیس، خت، خلکی، د ارتو لستونو کمیس.

**پیت** ( pit ) ص. نر.م.ج. ۱) چیت، چپړ؛ ۲) ټیټ، پلن، اوار، د جګ ضد.

**پیتاو** ( pitā́w ) نر.م. ۱) پیتاوی، د لمر ګرمی؛ ۲) په ژمي کې لمر ته د کېناستو ځای؛ ۳) د غر هغه اړخ چې لمر ته مخامخ وي.

**پیتاوه** ( paytāwá ) ښځ.م. ورینه یا د خمتا هغه اوږده ټوټه چې په پښو باندې تاوېږي.

**پیتل** ( pitál ) نر.م. یو ډول فلز.

**پیتلي** ( pitáli ) نر.م. حلبي، فلزي.

**پیتونه** ( pitawána ) ښځ.م. پیتونګ، چیتونه، پلنونه، چپړونه، په زور سره پلنونه.

**پیته** ( pitá ) ښځ.م. ۱) د اندازه کولو فیته؛ ۲) د ټیپ ریکاډر فیته؛ ۳) د لیکلو د ټایپ فیته؛ ۴) پرې شوی ربښکی، چې نجونې یا ښځې یې د ویښتانو په تړلو یا په کالیو کې استعمالوي.

**پیتی** ( pitáy ) نر.م ۱) یو ډول ټوپک؛ ۲) ص. نر.م. چتی، چیت؛ ۳) چیت پوزی.

**پیتي**[1] ( piti ) ښځ.م. ۱) د غاښو خیرې؛ ۲) د غړکې منګ، د شلومبو د غړکې منګ.

**پیتي**[2] ( páyti ) ښځ.م. پاتي، پیاتي، پاخه دال.

**پیتېدل** ( pitedál ) مص. ل. چپړیخېدل، چیتېدل، پلنېدل، د زور (فشار) په واسطه پلنېدل.

**پیتیکانتروپ** ( pitikāntróp ) نر.م. د یوه تاریخي ژوي نوم دی چې هډوکي یې د جاوا په ټاپو کې لاس ته راغلي دي.

**پېټ** ( peṭ ) نر.م. ۱) تو، لعنت، پېغور؛ ۲) پېټی، پشتاره؛ ۳) ق. بالکل، هرګز.

**پېټار** ( peṭā́r ) ښځ.م. یو ډول توکرۍ ده چې خوله یې تنګه او خېټه یې ارته وي.

**پېټک** ( peṭák ) نر.م. ۱) مخ روڼی، د ناوې د مخ د ښکاره کولو په وخت څه ورکول (مخ پېټک)؛ ۲) د ښځې ګانه؛ ۳) نوي زېږېدلي ماشوم لیدو ته څه ورول.

**پېټل** ( peṭál ) مص. مت. لعنت ویل، ملامتول، ملامت کول، بې عزته کول.

**پېټن** ( peṭán ) نر.م. ۱) کرکه، نفرت، کروې یې؛ ۲) کریکه، کریغه، کریږه.

**پېټنه** ( peṭána ) ښځ.م. ۱) ملامتونه، بې عزته کونه ۲) نفرت کول، کرکه کول.

**پېټو** ( peṭū́ ) نر.م. لعنت ویونکی، ملامتوونکی، کرکه کوونکی.

**پېټوار** ( piṭwā́r ) نر.م. و ګ. پېټار.

**پېټه** ( peṭá ) نر.م. ۱) یو ډول کدو؛ ۲) ص. نر.م. موړ، بې اشتها؛ ۳) پټ زړه.

**پېټ هېټ** ( peṭhéṭ ) نر.م. لعنت، بدرد، پېغور.

**پېټی** ( peṭáy ) نر.م. ۱) پنډ، وځه، پشتاره، پنډه؛ ۲) ذمه واري ذمه؛ ۳) عمل، کړه؛ ۴) ص. نر.م. زیاتی، بار، هغه څه یا څوک چې پر چا بار تحمیل شوی وي.

**پېټۍ** ( peṭáy ) ښځ.م. ۱) کمربند، د څرمنې ملابند؛ ۲) د لرګي صندوق، د ګټې سندوخ.

**پېجاو** ( pejā́w ) ص. نر.م. پاک، پیجو، پاکیزه.

**پېجاوېدل** ( pejāwedál ) مص. ل. پاکېدل، صفا کېدل، ستره کېدل، پاکیزه کېدل.

**پېجمخی** ( pejmáxay ) ص. نر.م. پی مخی، ښکلی، ښایسته، ګلالی، په زړه پورې.

**پېچ** ( peč ) نر.م. ۱) ول، تاو؛ ۲) د پېچش ناروغي؛ ۳) سرکشي؛ ۴) پېچي مېخ، بولټ؛ ۵) کلې.

**پېچاپېچ** ( pečā́peč ) ص. نب. ۱) پېچان، تاو راتاو، ول ول؛ ۲) ګلګوتي، ګورګوتي.

**پېچان** (pečān) ص. نر.م. پېچاپېچ.

**پېچان پېچان** (pečānpečān) ص. نب. کاږه واږه، لور په لور، يو مخ په بل مخ.

**پېچ پېرى** (pečpáray) ښځ.م. بلبل غوندې يوه مرغۍ ده چې په سر باندې تاج لري.

**پېچ پلى** (pečpálay) نر.م. د يوې يوناني دوا نوم دی.

**پېچتاو** (pečtāw) نر.م. پېچتو، پېچکش.

**پېچش** (pečiš) نر.م. ۱) د خېټې مروړ، د معدې يو ډول ناروغي ده؛ ۲) اختلاف، اختلال.

**پېچک** (pečák) نر.م ۱) د تارونو تخته؛ ۲) چوړۍ اوړۍ، غوړيې؛ ۳) عشقه پيچان، يو ډول ګل.

**پېچکاري** (pečkāri) ښځ.م. ۱) ستن، انجکشن؛ ۲) هغه دوا چې بدن ته داخلېږي.

**پېچل** (pečál) مص. مت. غړل، غښتل، تاوول؛ ۲) غامضول؛ ۳) مشاجره، نزاع، خبره اوږدول.

**پېچلتيا** (pečaltyā) ښځ.م. پېچلتوب، جړتوب، جړ تيا، جړه.

**پېچلى** (pečálay) مف. نر.م. ۱) تاو راتاو، غړل شوی؛ ۲) سخت، غامض.

**پېچ مخى** (pečmáxay) نر.م. پې مخى، ښکلى، ښايسته، حسين.

**پېچ مرى** (pečmaráy) ښځ.م. ۱) کونجکه، يو ډول اوږده مرى، يو ډول توره يا شنه مرى چې کوچنيانو ته يې تر پښو تړي؛ ۲) يو ډول سپينه مرى چې کوچنيانو ته يې په غاړه کې اچوي.

**پېچموزې** (pečmóze) ښځ.م. پېښارې، تيوکې، ملندې، مسخرې، پسخند، وشتې، پچمې.

**پېچمې** (pečmé) ښځ.م. ملندې، مسخرې.

**پېچواړى** (pečwaṛáy) ښځ.م. پېچوړى، پچاړې، پېکاړه، د آس د پښو د تړلو پړى.

**پېچوان** (pečwān) نر.م. يو ډول چلم چې نل يې ډېر اوږد وي.

**پېچوتاب** (pečotáb) ص. نر.م. ۱) تاو راتاو، ګاږ ګوټي؛ ۲) نر.م. ناکراري، بې قرارې.

**پېچوخم** (pečoxám) ص.نر.م. کوږ ووږ، کجوپېچ، پېچلى.

**پېچول** (pečawál) مص. مت. پېچل، تاوول، تاو راتاو کول، تاو راتاوول.

**پېچومه** (pečomá) ښځ.م ۱) پورته کېدنه، ختنه، جګېدنه، لوړېدنه؛ ۲) پېچومى.

**پېچومى** (pečūmáy) نر.م. مخ په لوړ، مخ په پورته، ستغ؛ ۲) جګه لاره..

**پېچول** (pečawál) مص. مت. پېچل، تاوول، تاوروا تاو کول،

**پېچونکى** (pečūnkáy) فا.نر.م. ۱) پېچونى، تاوونکى، غړونکى؛ ۲) پتونى، پڅونى.

**پېچه** (pečá) ښځ.م. د ښځو د غوږ لاندې کوڅې کړې وېښتان.

**پېچې** (peče) ښځ.م. خوله بندونه، خوله بندکه.

**پېچيدګي** (pečidági) ښځ.م. مشکلوالي، مغلق، ګرانوالي، سختوالي.

**پېچېدل** (pečedál) مص.ل. ۱) تاوېدل، تاو راتاو کېدل؛ ۲) کږېدل، کوږ ووږ کېدل.

**پېچېده** (pečedá) نر.ج. ۱) تاوېده؛ ۲) ګوږ ګوټ کېده، کږېده، کاږ ګوټ کېده.

**پېڅ** (pec) نر.م. ۱) صبر، حوصله، زغم، برداشت؛ ۲) شر، پسات، فساد.

**پېڅانى** (pecānáy) نر.م. لېږ غوندې، پوتى، خسوزى، خسوسکى، ذره، دوشکى.

**پيڅکه** (pická) ښځ.م. پيڅه، پيڅکى، ځنډه، د ځادر ځنډه، پلو، د پلو ځنډه.

**پېځل** (pecә́l) مص. مت. پېځل، صبر کول، حوصله کول، زغم کول، تحمل کول.

**پېځول** (pecawә́l) نر.م. ۱) د کېږدۍ پرده، د خیمې پرده؛ ۲) هغه لوی پوزی چې د کوټې غولي ورباندې فرشېږي.

**پېځه** (pecә́) ښځ.م. ۱) صبر، حوصله، زغم، تحمل؛ ۲) قسمت، تقدیر؛ ۳) ص. نر.م. شله (سړی)؛ ۴) منه، سرتمبه سړی؛ ۵) بې ننګ (سړی).

**پېځيالی** (pecyālә́y) ص. نر.م. صبرکوونکی، زغم لرونکی، تحمل کوونکی.

**پېخ** (pex) نر.م. خنډ، ښنکر، خنډوکی.

**پېخاره** (pexārә́) ښځ.م. پشاړې، د پسونو هغه پچې چې تر لم لاندې نښتې وي.

**پېخال** (pexā́l) نر.م. د مرغیو فضله مواد.

**پېخر** (pexә́r) ص. نر.م. زښت ډېر، پرېوانه.

**پېخل** (pexә́l) مص. مت. رنځور خولې کول، په بیمار خوله راوستل.

**پيخي** (pixi) ص. نر.ج. لوی، غټ او بې ډوله غابنونه (دارې).

**پيدا** (paydā́) ص. نب. ۱) زېږېدلی، پیدا شوی؛ ۲) جوړ، تیار؛ ۳) بلد، روږدی؛ ٤) ښځ.م. موندنه، پیداکول؛ ۵) څرګند، جوت، ښکاره.

**پيدا کول** (paydākawә́l) مص. مت. ۱) موندل، لاس ته راوړل، منځ ته راوړل؛ ۲) زېږول.

**پيدا کېدل** (paydākedә́l) مص. ل. ۱) موندل کېدل، لاس ته راوړل کېدل؛ ۲) ګټل کېدل، ۳) خلق کېدل، جوړېدل؛ ٤) زېږېدل.

**پيدا ګر** (paydāgә́r) ص. نر.م. پیداوښتګر، زېږندوی، ګټندوی.

**پېداګوژي** (pedāgoži) ښځ.م. ۱) د ښوونې او روزنې علم؛ ۲) د ښوونې او روزنې موسسه.

**پيداوار** (paydāwā́r، نر.ج. ۱) محصولات، حاصلات؛ ۲) فصل؛ ۳) ګټه، فایده.

**پيداوښت** (paydāwә́st) نر.م. ۱) پیدایښت، زېږېدنه، منځ ته راتلنه، خلقېدنه؛ ۲) ګټه.

**پيداوېدل** (paydāwedә́l) مص.ل ۱) پیدا کېدل، منځ ته راتلل؛ ۲) موندل کېدل؛ ۳) زېږېدل.

**پيدايښي** (paydāyiši) ص. نب. ۱) پیدایښت، د زېږېدو؛ ۲) اصلي او فطري.

**پيدايښت** (paydāyә́st) نر.م. پیداوښت، پنځېدن، پنځون، زېږن، زېږون، زېږد، زېږېدنه.

**پېډل** (peydә́l) ص. نر.م. ۱) په پښو، پلی، پیاده؛ ۲) د شطرنج پیاده موري؛ ۳) پیاده عسکر.

**پيډ** (piḍ) ص. نر.م. پیډی، کجې، کچې، کوډی، پیډن، کوږپښی، کچل، د کږو پښو خاوند.

**پيډل** (paydә́l) نر.م. پایډل، د بایسکل هغه ځای چې پښه ورباندې ایښودل کېږي.

**پير** (pir) ص. نر.م. (ج. پیران) ۱) مرشد، بزرګ، لارښوونکی؛ ۲) سپین ږیری، بوډا، ضعیف؛ ۳) مشر؛ ٤) نر.م. دوشنبه، د ګل ورځ.

**پېر** (per) نر.م. ۱) دور، چکر، ګردش؛ ۲) رنګ، اندازه، خیال؛ ۳) پور، قرض، دین.

**پيرامېډ** (payrāmiḍ) نر.م. هرم، هر هغه شی چې کښتنۍ برخه یې پلنه او سر یې نری وي.

**پېرانی** (perānә́y) ص.نر.م ۱) پېریانی، پېریانو نیولی؛ ۲) رو. څوک چې د مېرګیو په عصبي ناروغۍ اخته وي.

**پېرانه** (perānә́) ښځ.م. هغه لوړ ځای چې د ګنبو ګانې پرې ګرځي.

**پېرختونې** (perxatū́ne) ښځ.م. پېروته، پېروتې.

**پېرخته** (perxә́ta) ښځ.م. پېروته، پېروتې، پروتې.

**پېرړ** (perr) ص. نر.م. و ګ. پېر.

**پېرزو** (perzó) نر.م. لور، لورينه، پېرزوينه.

**پېرزوينه** (perzoyána) ښځ.م. لورېينه، ښه نيت څرګندونه، رواداري.

**پېرشونی** (peršonáy) ښځ.م. شينځه، د سر د ويښتو لاره.

**پيرکی** (pirakáy) نر.م. ۱) بولاني؛ ۲) وړوکی پير، د پير اسم تصغير.

**پېرګر** (pergár) ص. نر.م. پېښې کوونکی، تقليد کوونکی، پېښمار، لوبغاړی.

**پيرګی** (pirgáy) نر.م ۱) پلی، دځېړي د ونې دانه؛ ۲) پارو، خوی، يېم، راشپېل؛ ۲) څلور غاښې، درې غاښې، سکو.

**پېرل** (perál) مص. مت. ۱) اوېدل، اوډل، بونل؛ ۲) مشکنې پېيل، مرۍ پېيل؛ ۳) پېرودل، اخيستل، رانيول.

**پېرمخی** (permáxay) ص. نر.م. ښکلی، پې مخی، ښايسته، حسين، ډولي.

**پيرو** (payráw) ص. نر.م. ۱) مريد، په چا پسې تلونکی، تعقيبوونکی؛ ۲) نر.م. د يوه مرغه نوم.

**پېروان** (perwā́n) نر.م. ۱) پرېوان، انول، اوړه، جوره، د ښاريو هغه کڅوره چې د بچي تر پيدا کېدو وروسته د مور له نسه راووځي.

**پېروپلور** (paeroplór) ق. رانيونه او خرڅونه، راکړه ورکړه، سوداګري.

**پېرود** (peród) نر.م. اخيسته، اخيستنه، رانيونه.

**پېرودل** (perodə́l) مص. مت. اخيستل، رانيول، په بيه اخيستل.

**پېروزه** (perozá) ښځ.م. ۱) فېروزه، يو قيمتي کانی دی، رنګ يې شين (آسماني) وي.

**پېروزه** (peróza) ښځ.م. کامياب، بري مند، سرخرو، فاتح

**پېروزی** (perozáy) نر.م. ساپه، صافي، جړن، هغه توکر چې شيان او سامان پرې پاکېږي.

**پېروزي** (perozí) ښځ.م. ۱) بري، کاميابي؛ ۲) ظفر، فتح.

**پيرومېتر** (payromīṭar) نر.م. تودوخه اندازه کوونکی، حرارت سنجوونکی.

**پېرونکی** (perū́nkay) ف. نر.م. ۱) بوونکی، اوبدونکی؛ ۲) اخيستونکی، رانيوونکی.

**پېرونه** (perawána) ښځ.م. پېرودنه، اخيستنه.

**پېروني** (perwū́ne) ښځ. ج. پروين، ثريا، دانګورو وا ښکي غوندې څو ستوري دي.

**پېرونه** (peroṇá) ښځ.م. د ګانې ميدان چې غوايي په کې ګرځي.

**پېروی** (peráway) نر.م. رش، قيماق، قيماغ، د شيدو سر، پروی، ارياش.

**پيروي** (payrawí) ښځ.م. ۱) تقليد، ۲) اطاعت، په چا پسې تلنه، د چا حکم منه.

**پېره** (pera) ښځ.م. (ج. پېرې) وار، نوبت، دفعه.

**پيره** (payrá) ښځ.م. ۱) ګردش، چکر، ګرځېدنه؛ ۲) څوکۍ، ساتنه، پيره، پهره.

**پيره دار** (p(ay,e)radā́r) فا. نر.م. پيره کوونکی، څوکيدار، محافظ، پيره والا.

**پېری** (peráy) نر.م. (ج. پېريان) جن.

**پېريان اوبه** (peryānobá) ښځ.م. سراب، د ګرمۍ په موسم کې په صحرا کې يا په پاخه سړک د اوبو غوندې منظر ليدل.

**پېريان کټ** (peryānkaṭ) نر.م. يو ډول څلور ګوټيز کانی دی.

**پېرياني** (peryānī́) ص. نر.م. ۱) جندي، جني؛

۲) په صرعي اخته، په غش اخته.
**پېرېدل** (peredə́l) مص. ل. اخيستل، رانيول، اخيستل کېدل، پېرودل.
**پير** (pir) نر. م. بوس، پروړه، پوډ.
**پېړ** (peṛ) ص. نر. م. ج. ۱) غټ، پنډ؛ ۲) نر. م. د لرګي توتې؛ ۳) دشريت راويستلو کار.
**پېړتوب** (peṛtób) نر. م. پېړوالی، پرېړوالی، پنډوالی؛ پنډتوب.
**پېړزه** (peṛzá) ښځ. م. ۱) دخاورو ډېری، د خاورو غونډۍ؛ ۲) د غره اوچته (جګه) شوکه.
**پېړغو** (peṛğū́) نر. م. و ګ. پرغو.
**پېړمار** (peṛmā́r) ص. نر. م. ګانی مار، هغه شوک چې پر ګانۍ له ګنيو شربت باسي.
**پېړمن** (peṛmán) ص. نر. م. ۱) لټ، ناراسته؛ ۲) چاغ او شلند، مزی، غوټ.
**پېړو**[1] (peṛū́) نر. م. د شپانه حق الزحمه، د شپون مزدوري.
**پېړو**[2] (peṛó) ص. نر. م. بر لرونکی، سورور، پلن، د اوږده ضد، بردارہ.
**پېړوده** (peṛodá) ص. نب ۱) ځېږ، ديژ؛ ۲) سخت، کلک.
**پېړوالی** (peṛwā́lay) نر. م. پنډوالی، پلنوالی، غټوالی، سختوالی.
**پېړه** (peṛá) ښځ. م ۱) زغاله، ځغاله؛ ۲) شير پېړه.
**پېړۍ** (peṛáy) ښځ. م. ۱) چوکی؛ ۲) د مېزانو د جنګولو په وخت کې د ننداره کوونکو دايره؛ ۳) د عمر يوه ټاکلې موده، يو نسل؛ ٤) ډېره موده؛ ۳) قرن، ۱۰۰ کاله.
**پېز** (pez) نر. م. پيوند، پنځرک، رفو.
**پيزار** (payzā́r) نر. ج. ۱) موچنې، پنې؛ ۲) څپلی، کوښې، د پښو کولو شی.
**پېزر** (pezár) نر. م. يو ډول تريخ بوټی دی.
**پيزر** (payzár) نر. م. يو ډول ګانی دی چې مردکې ورڅخه جوړوي.
**پېزګر** (pezgár) ص. نر. م. پېزونکی، رفوګر.
**پېزل** (pezál) مص. مت ۱) پيوندول، پنځرک کول، رفو کول، مرمت کول؛ ۲) پوزې اوېدل.
**پېزو** (pezó) ص. نر. م. پوزمير، پزه ور، پوزور.
**پېزوان** (pezwā́n) نر. م ۱) د پوزې ګانه؛ ۲) هغه پړی چې د خارويو پوزې او سر ته اچول کېږي؛ ۳) د پوزې خلی، ډنهر، هغه خلی چې د پوزې په سوري کې يې اېښي وي؛ ٤) پېزوانک، د څپليو د دوو ګوتو په منځ کې تسمه؛ ٥) په سلواغه کې د پړي تړلو ځای.
**پېزواندی** (pezwāndáy) ص. نر. م. ۱) پېزواني، هغه خاروی چې پزې ته يې پېزوان اچول شوی وي؛ ۲) د پيزار پېزوان.
**پېزوانۍ** (pezwā́nay) ښځ. م. ۱) هغه نجلۍ چې پېزوان يې اچولی وي؛ ۲) معشوقه، دلبره.
**پېزوانی** (pezwā́nay) نر. م. چوروکی، بېنيګک، کليک، هغه لرګی چې د هغه په واسطه د يبوې رون له ژغ (جغ) سره تړل کېږي.
**پېزه** (pezá) ښځ. م. ۱) تاج؛ ٤) بولک، د بولو د څخېدلو ناروغي.
**پيزي** (payzi) ص. نر. م. چينجر، شيته، مړاوی، خزان شوی، مړجينګ.
**پېزۍ** (pezáy) ښځ. م. ۱) توری، تکی؛ ۲) تاکيد.
**پيزی** (pizáy) نر. م. پوزی، بوريا، انډېری.
**پيزي توب** (pizitób) نر. م. شيته توب، مړاوي والی، مړاوي توب.
**پېزېدل** (pezedə́l) مص. مت. مړاوي کېدل، شيته کېدل، پېزی کېدل.

**پېژاند** (pežā́nd) ص، نر.م. پېژند، د پېژندګلو، واقف، شناسا، بلد.

**پېژنتون** (pežantū́n) نر.م. د پوهنتون اداري یې موسسې د ذاتيې ځانګه.

**پېژند** (pežánd) نر.م. پېژندون، پېژندنه.

**پېژندپاڼه** (pežandpāṇá) ښځ.م. د هویت پاڼه، د پېژندلو پاڼه، پېژندلیک.

**پېژندګلوي** (pežandgálwi) ښځ.م. پېژندګلي، شناخت، معرفت.

**پېژندل** (pežandál) مص. مت. پېژندل، بلدیت لرل، اشنايي لرل.

**پېژندوی** (pežandū́y) نر.م. ۱) پېژندونکی، معرفت لرونکی، پېژندونی، واقف؛ ۲) اشنا.

**پېژندويي** (pežandóyi) ښځ.م. پېژندګلوي، پېژندنه، آشنايي، اوځارتیا، مشهورتیا.

**پېژونی** (pežū́nay) نر.م. د پښې قلم، د آهنګر د اوسپنې د پرېکولو قلم.

**پېژوۍ** (pežwáy) ښځ.م. بلې، چچه، ځنډلی.

**پېړل** (peṛál) مص. مت. بېژه کول، څېرل، پرې کول؛ ۲) قطع کول؛ ۳) توږل، تراشل.

**پېړونی** (peṛū́nay) نر.م. توکیا، توکه، ساتول، کتېره، هغه آله چې غوښه پرې ټکوي.

**پیس** (pis) نر.م. ۱) کبر، غرور؛ ۲) برګی، د برګي ناروغي؛ ۳) قطعه، د شعر ټوټه، نمایشنامه.

**پیساني** (pisā́nay) نر.م. پیساني، خځوشکی، لېشی، پوټسکی، ذره، پېځانی.

**پیسټن** (pisṭán) نر.م. پشتن، یو میخانیکي ساختمان دی چې په موټرونو کې د ګاز په انفجار سره د سلنډر په دننه کې حرکت کوي.

**پېسر** (pesə́r) ص، نر.م. ۱) بدرنګ، بدڅېره، بد شکله؛ ۲) بې خوند او بې رنګ شیز.

**پیسکوټ** (piskóṭ) نر.م. فیس کوټ، د پټو یوه لوبه ده.

**پیسکوړک** (piskoṛák) نر.م. تش وری، پینکه دانه، پوچې داني، باد وهلې وری.

**پیسلی** (pisláy) نر.م. د غمکې هغه برخه چې د پنبه کولو په وخت کې وچه پاتې شي.

**پیسمن** (pismə́n) ص، نر.م. مغرور، بباخمن.

**پیسمی** (pismáy) نر.م. پیشلمی، چرپانګی.

**پیسه**[1] (paysá) ښځ.م. ۱) یوه وړه سکه، ماتې پیسې، پول سیاه؛ ۲) روپۍ، سکه.

**پیسه**[2] (pisá) ښځ.م. پیرشانی، شینځه، د وېښتو لاره.

**پیسی** (pisáy) ص، نر.م. د پیس په ناروغۍ اخته، د برګي په ناروغۍ اخته.

**پیسې والا** (paysewālā́) ص، نب. شتمن، بډای، د مال او دولت خاوند، د شتو خاوند.

**پیش** (piš) نر.م. نر پیشو، بلیکی، پیشبی، نرغوټ، پش، پشی.

**پېښ** (peš) نر.م. ۱) پېښ، ضمه، د نیم واو د ښکاره کولو اواز؛ ۲) ق. ورته پیدا، دوچار، مخامخ، وړاندې.

**پېشاب** (pešā́b) نر.ج. تشې متیازې، بولې.

**پیشاړه** (pišāṛá) ښځ.م. ۱) ملنډه وهنه، ریشخند، تمسخر، استهزا؛ ۲) حمله، یرغل.

**پیشاک** (pišā́k) نر.م. رشک، بېرنی، د سپږنې ناروغي، یو ډول سپږنی، داد، د جرب ناروغي، یو ډول جلدي ناروغي.

**پېشانه** (pešāná) ښځ.م. ښکلې او ښایسته کور.

**پیشپو** (pišpó) ښځ.م ۱) یو ډول لوبه ده، پیشبازي؛ ۲) په اتڼ کې د پیش اواز؛ ۳) د ښځو یو ډول اتڼ دی.

**پیشتری** ( pis̆túray ) نر. م. پېچلېرى، يو ډول سرانې او خود رو به سابه.

**پیشتکی** ( pis̆tákay ) نر. م. زینه. اندرچیه.

**پیشتول** ( pis̆tawúl ) نر. م. ۱) پېشتول، شاتير، ويشه، پش؛ ۲) چت؛ ۳) بلى، چچه.

**پیشته مغز** ( pis̆tamáǵz ) نر. م. و گ. پسته.

**پېشک** ( pes̆ák ) نر. م. ۱) سپوني، يو ډول جلدي ناروغي ده؛ ۲) د كلاد ختو يو شاباسي، د كلا د دور د پخسي د يوه شاباسي اندازه.

**پیشکارل** ( pis̆kārál ) مص. مت. پیشو رابلل، پیشي په پیش پیش راغوښتل.

**پیشکنډی** ( pis̆kānḍáy ) نر. م. ۱) پیشنګوری، د پیشي بچی؛ ۲) ديوې کورنۍ وړوکی غړی.

**پېشکوزه** ( pes̆kawzá ) ښځ. م. ستوه، پېچکوزه، پېشقوزه، پېش قبضه.

**پیشکه** ( pis̆áka ) ښځ. م. ۱) پیشی، پیشو، پش؛ ۲) پشی، يو ډول حشره ده.

**پېشکی** ( pes̆káy ) ص. نر. م. په پوني اخته، په سپوني اخته، د سپلمی په ناروغی اخته.

**پېشل** ( pes̆ál ) مص. مت. سېړول، يخول، په چمچه خواړه سړول او خوړلو ته برابرول.

**پېشلره** ( pes̆lára ) ښځ. م. و گ. پېشتري.

**پېشلمی** ( pes̆lámay ) نر. م. پېشمى، پشمنى، پېشمنى، سحرى، چرګ بانګى.

**پېشلی** ( pes̆(á,a)lay ) صف. نر. م. سور شوی، يخ شوی، په کاچوغه باندې سور شوی خوراک.

**پېشمنډی** ( pes̆manḍáy ) ښځ. م. ريشخند، ټوکې، پېشاړه، توقې، پرېچمې، پېشاړې.

**پیشنګ** ( pis̆áng ) نر. م. د قافلې د سر تېيو.

**پیشنګوری** ( pis̆angūráy ) نر. م. پشکوټی، پسنګوری، د پشو بچی.

**پیشو** ( pis̆ó ) ښځ. م. پیشی، پشه، بلیکی.

**پیشوبازي** ( pis̆obázi ) ښځ. م. ۱) خوشامندي، چاپلوسي؛ ۲) د دوو کسانو ترمنځ لانجه.

**پیشوپړی** ( pis̆opṛáy ) ښځ. م. درسي د څکولو لوبه، د پړي کشولو لوبه، راکاږي، وابېلوبه.

**پیشوخوټ** ( pis̆oxūt ) نر. م. ۱) کنډ، کانډ، ګوری؛ ۲) د اسفنج په څېر سوري لرونکی؛ ۳) د تبیري ګل، ګل سنګ؛ ٤) د یوې ونې تخم چې په تار کې یې پېیي او د څارویو غاړې ته یې وراچوي.

**پېشورز** ( pes̆wárz ) نر. م. جامن، د ګډا کمیس، جابې، پېشواز.

**پیشوګی** ( pis̆ogáy ) ښځ. م. ج. ۱) کمکی پیشو؛ ۲) پشی، يو ډول خزنده ده چې د شپې رڼا کوي او د نباتاتو پاڼې خوري.

**پیشولمی** ( pis̆olámay ) نر. م. سورجیجنو، جینجو، جنجو، خاکشیر.

**پیشومالګه** ( pis̆omālgá ) ښځ. م. لنډی، غلبېل، خرې تنده، د کوچنیانو لوبه ده.

**پیشومپړی** ( pis̆ompṛáy ) ښځ. م. يو ډول لوبه ده، توپ بازي.

**پیشونکی** ( pes̆ūnkáy ) فا. نر. م. په څمڅې يا کاچوغه د تاوده شي سړوونکی.

**پیشونګړی** ( pis̆ongṛáy ) نر. م. د پیشو بچی، پیشنګوری، پشیونګور، پشینګور.

**پیشونګړی** ( pis̆ongṛáy ) ښځ. م. انډوخر، لته پیر، خربازي، کلابازي، يو ډول لوبه ده.

**پېشوی** ( pes̆wáy ) ښځ. م. څمڅه، چمچه، څمڅې.

**پېشه** ( pes̆á ) ښځ. م. ( ج. پېشې ) ۱) چار، کسب، هنر؛ ۲) نکل، ټوکه؛ ۳) عادت؛ ٤) کچنیو ب ۵) څریکه، مغزو کې اور بلېدنه.

**پیشی** (pišáy) ښځ.م. ۱) پشه، بلیکی، پیشو؛ ۲) پیشوګی، یو خزنده ده چې نبتات خوري؛ ۳) پېزوان؛ ٤) دخرمنې امیانی؛ ٥) ګوس منګور، لندی، لټکه، ګومنه، یو ډول مار دی.

**پیشې** (piše) ښځ.م. د پیشو د شړلو اواز.

**پېشي** (peši) ښځ.م ۱) وړاندې کېدنه؛ ۲) محکمې ته د وړاندې کېدو نېټه.

**پېشېدل** (pešedә́l) مص. ل. ۱) وړاندې کېدل؛ ۲) محکمې ته وړاندې کېدل.

**پېشیمه** (pešimá) ښځ.م. د پیشو وار راوړنه، د جنسي تحریکاتو له امله د پیش او پشي غورهاري

**پېښ** (peṣ) نر.م ۱) پېش، ضمه (و)؛ ۲) ق. مخامخ، واقع، برابر.

**پېښلیک** (peṣlik) نر.م. د پېښو او حادثو لنډ لیکلی اثر، د پېښو لیکنه.

**پېښاو** (peṣā́w) نر.م. ۱) تیوکه، ملنډه، وشته؛ ۲) پېښه، حادثه، واقعه.

**پېښاوو** (peṣāwū́) ص.نب. تیوکمار، تیوکي، توقي، پېښې کوونکی، پېښو.

**پېښول** (peṣawә́l) مص. مت. واقع کول، رامنځ ته کول.

**پېښولې** (peṣóle) ښځ.ج. د پېښو د پنډی هډوکی، د پوندې هډوکی.

**پېښه** (peṣә́) ښځ.م. (ج. پېښې) ۱) تقلید، په پټو سترګو د بل چا په پله تګ؛ ۲) تیوکه، ملنډه؛ ۳) واقعه، حادثه.

**پېښه مار** (peṣamā́r) ص.نر.م ۱) پېښې کوونکی، مقلد؛ ۲) نکل کوونکی؛ ۳) تیوکی. تیوکمار.

**پېښېدل** (peṣedә́l) مص. ل. واقع کېدل، صحي ته راتلل؛ ۲) یوه پېښه پیدا کېدل؛ ۳) اتفاقي او یو ناڅاپي منځ ته راتلل.

**پېښې کول** (peṣekawә́l) مص. ل. تقلید کول، په پټو سترګو د بل چا په پله تلل.

**پیغام** (payǧā́m) نر.م. (ج. پیغامونه) ۱) خبر، پیام؛ ۲) حال، احوال.

**پیغامبر** (payǧāmbár) فا نر.م. ۱) پیغمبر، رسول، نبي؛ ۲) پیغام وړونکی، استازی، قاصد.

**پېغلتوب** (peǧaltób) نر.م. ۱) د نجلۍ د ځوانۍ او بلوغ دوران؛ ۲) بکرتوب.

**پېغلوکې** (peǧlóke) ص. ښځ.م.ج. نوې پېغله، پېغلټه، تازه پېغله، پېغلچوکې.

**پېغله** (peǧlá) ښځ.م. (ج. پېغلې) باکره، ځوانه جینۍ، ځوانه نجلۍ، ناواده جینۍ.

**پېغور** (peǧór) نر.م. (ج. پېغورونه) تانه، طعنه، بدې ردې.

**پېغورجن** (peǧorján) ص. نر.م. پېغور کوونکی، پېغور وړ کوونکی؛ ۲) د غندنې جوګه.

**پېغورول** (peǧorawә́l) مص.مت. پېغور ورکول، چاته خپل ښه د پېغور په ډول ور یادول.

**پېغورېدل** (peǧoredә́l) مص. ل. پېغور کېدل، طعنه ورکول کېدل.

**پېغولی** (peǧoláy) نر.م. پوغله، ډاسه، د نوې زېږېدلې بچې نرمې ډکې متیازې.

**پیک**[1] (pik) نر.م. ۱) هغه لرګی چې د اوبو کته ورباندې تړل کېږي؛ ۲) د تېلو ګړنی، د تېلو اچولو قیف؛ ۳) راوتلی ځای؛ ٤) د خولې پیک.

**پیک**[2] (pā́yk) نر.م. (ج. پیکونه) ۱) چنوسی، چنبامسه، پوپنکه؛ ۲) مچ شړونی، مچشړ، مچ سګ، چوړی؛ ۳) بموزی، پکه.

**پېک** (pek) نر.م. ځری، استازی، قاصد، پیغام وړونکی، خبر رسوونکی.

پیکری (pikráy) نر.م. تیکری، کودری، ټیکرکی، پیکرگی، کودنی.
پیکړه (paykə́ṛa) ښځ. م. (ج. پیکړې) ۱) زولانه؛ ۲) پښندی، د پړې تړلو هغه کړۍ چې د ښاروي پښو ته پرته وي؛ ۲) مشکله قضیه.
پیکل (paykə́l) نر.م. ۱) دکالیو او جامو د اوارولو تناو؛ ۲) د درمند دمیده کولو څپر.
پیکنکل (paykankə́l) نر.م. ۱) ونډ وند کونه؛ ۲) تشریح.
پیکو (paykó) ښځ.م. وګ. پایکو.
پیکوړه (pikowṛá) ښځ.م. وګ. پکوړه.
پی کول (paykáwal) مص.مت. ۱) ونې پرېکول؛ ۲) د اوبو ژوروالی معلومول.
پېکوی (pekwáy) نر.م. (ج. پېکوي) پیوی، چونکه، له تورو تارونو او زرتاروڅخه جوړ مزی چې ښځې یې د سر د شا د ویښتانو سره تړي.
پیکه (piká) ص. نب. ۱) بې خونده، بې مزې؛ ۲) تت، کم رنګه؛ ۳) شرمنده، ملامت، کچه؛ ٤) سپورمخی، بې نمکه، بدرنګ.
پیکه توب (pikatób) نر.م. ۱) پیکه والی، شرمنده ګي؛ ۲) د رنګ تتوالی؛ ۳) بې خوندي.
پېکی (pekáy) نر.م. ۱) څونډی، وربل، د تندي هغه ویښتان چې د پښتنې ښځې د ښځلتوب نښه ده.
پېګني (pegáni) ښځ.ج. د ګډو او پسونو وړۍ.
پیل (páyl) ق. شروع، ابتدا، آغاز.
پیلات (paylát) نر.م. شر، فساد، پتنه، فتنه.
پیلاتي (payláti) ص. نب. فسادي، فتنه ګر، پتنه کوونکی، پتنه جوړوونکی، مفتن.
پېلار (pelā́r) نر.م. پرده، اړ، پېلیار، پریال.

پیلامه (paylāmá) ښځ.م. (ج. پیلامې) ۱) پاپلامه، بنسټ، ستنه، تاداو، بېخ؛ ۲) نښه، نښان، علامه، نخښه؛ ۳) خوی، خصلت، عادت.
پېلایي (pelā́yi) ښځ.م. څپولی، پولی، ښاپولی.
پېلبو (pelábo) ښځ.م. برېښنا، پېلوا، الماسک.
پیلڅکی (pilackáy) نر.م. سرباری، پیلڅکی، د انډیو او بار د پاسه څوری او نورڅه اچول.
پېلستی (peləstay) ص.نر.م. ژنی، زنی، زلمونی، نوی ځوان، ځوانی ته رسېدلی.
پېلستیا (peləstyā́) ښځ.م. ځواني، زلمیتوب، بالغتوب، بلوغ، ژنیتوب.
پیلغوزه (pilğozá) ښځ. م. پلنه دوړی، د هاتي د غوږ په څېر دوړی.
پیل مرغ (pilmurğ) نر. م. د چرګ له کورنۍ څخه یو ډول مرغه دی چې خرتم لري.
پېلنه (pelána) ښځ.م. بېلتون، جدایي، بېلېدنه.
پېلوا (pelawā́) ښځ.م. وګ. پېلبو.
پیلوټ (pilóṭ) نر.م. (ج. پیلوټان) پایلټ، طیاره وان، جهازوان، د الوتکې چلوونکی.
پیلوټي (pilóṭi) ښځ.م. طیاره واني، جهازواني.
پېلوځی (pawā́ǰay) نر.م. پونډ، یزګه، شنزنی، اورلګاونی، یو ډول غوړ لرګی دی چې په اور لګولو کې کارېږي.
پېلوډ (pelóḍ) نر.م. ۱) زیار، کوښښ، کوشش؛ ۲) غمخواري، همدردي.
پېلوړه (peloṛá) ښځ.م. هغه پړی چې د کېږدۍ غوړی پرې تړل کېږي.
پېلوښه (peloṣá) ښځ.م. دخره د پښې تړلو پړی.
پیلول (paylawə́l) مص.مت. پیل کول، شروع کول، لاس پورې کول، پیلونه.
پېلونه (pelawána) ښځ.م. وګ. پېلوښه.

**پېلې** (pele) ښځ. ج. پايزېب، پښولې، يو ډول ګاڼه ده چې ښځې يې پښو ته اچوي.

**پيمال** (paymā́l) ص. نـر.م. ۱) لتاړ، پايمال، تر پښـو لاندې (کـول. کـېدل)؛ ۲) نـر.م. کار، کسب، شغل، فن.

**پيمان** (paymā́n) نر.م. (ج. پيمانونه) ۱) تړون، قول، ژبه، وعده، ژمنه، لوز.

**پيمانه** (paymānā́) ښځ.م ۱) جام، کټوری، پياله؛ ۲) د مقدار او اندازې معلومولو لوښی.

**پي مختوب** (paymaxtób) نـر.م. ښـايست، ښکلا، سپين مخی.

**پي مخی** (paymáxay) ص. نـر.م. ښـايسته، ښکلی، سپين مخی، ډولي.

**پېمدل** (pemdə́l) مص. مت ۱) پيمانه کول، پېمل؛ ۲) پېوډل، پېميل، پيرل؛ ۳) ډکول.

**پېمی** (pemáy) نـر.م. (ج. پېمي) وړی، اوړی، پيمانه، تتی، د غلې د پيمانه کولو لوښی.

**پېميل** (pemyə́l) مص. مت. پېمل، پېمدل.

**پينجڼ** (pinjā́ṇ) نر.م. ډانډسي، نداف، ډنډت.

**پينځ ټکی** (pinǰṭákay) نـر.م. ۱) پنځـه ټکی ټريک؛ ۲) ټيک، څېـره، رپی، هغـه ګـاڼه چې پېغلې يې د تندې د پاسه ځوړندوي.

**پينځلسی** (pinǰlásay) نر.م. د برات شپه.

**پېنډه** (penḍá) ښځ.م (ج. پېنډې) ۱) ګنه، څو کسه چې په يوه کاسه سره کېښني؛ ۲) يوه اندازه ختـه چې له چم څخه لېږدي؛ ۳) د لندو شرو اوړو لـېـره برخه.

**پېنډی** (penḍáy) ښـځ. م. هغـه پلنه او اواره تيـږه چې د کوټې د ستنې لاندې ايښودل کېږي.

**پينغ** (paynə́ǧ) نـر.م. پاينېغ، پانېغ، مـروره، اپنډيسی.

**پينک** (paynák) نـر.م. پينګ، د انګورو چيله، د کورو چيله، د انګور تاکو چيله.

**پينکی** (pinákay) نر.م. پينه، د لرګي ښانک.

**پينګن** (pingə́n) ص. نـر.م. ۱) لنډاکی، لنډی، بې حوصلې؛ ۲) چينګن، ژړن.

**پينل** (pinə́l) مص. مت. نغرل، پکل، کپه کول.

**پينه** (piná) ښځ م. ۱) پيوند، جامو ته ټوټه اچونه؛ ۲) د دېوال پشتي؛ ۳) پينکی، د لرګي ښانک.

**پينی** (pináy) نر.م. هغه بوټی چې رېبز (جارو) ترې جوړېږي.

**پينۍ** (pinə́y) ښځ. م. نړۍ، دنيا، جهان.

**پينېغ** (pineǧ) نر.م. و ګ. پينغ.

**پېڼه** (peṇá) ښځ. م. ۱) وار، پهره؛ ۲) ملګـرتيا؛ ۳) ص. نب. غټ، پېړ، چاغ.

**پيواز** (paywā́z) نـر.م. پايـواز، هغه څوک چې د ناروغ يا بندي د احوال اخيستلو لپاره ورځي.

**پيوازي** (paywā́zi) ښځ. م. و ګ. پښبه ارته.

**پېوډل** (pewḍə́l) مص. مت. ۱) پېيل؛ ۲) ترتيب ګول، سمول.

**پيوړکی** (paywə́ṛkay) نر.م. (ج. پيوړکي) پی، يو ډول بوټی دی چې شيدې په کې وي.

**پېوره** (pewə́ra) ص. ښځ. م. هغه غوا يا بل څاروی چې ډېرې شيدې کوي.

**پيوست** (paywást) ص. نـر.م. ج. ۱) نښـتی، جوخت، سره لګېدلی؛ ۲) ګوښی، بېل.

**پيوستون** (paywastū́n) نـر.م. ۱) يو ځای والی، نښتل، جوختېدنه؛ ۲) د غره په منځ چاودون.

**پيـوسته** (paywastá) ص.نب. نـږدې، نژدې، جوخت، جخت، سره لګېدلی.

**پيـوستېدل** (paywastedə́l) مـص. ل. نـږدې کېدل، جوختېدل، جختېدل، لګدل، نښتل.

**پېوول** (pewā́l) مص. مت ۱) ونې پرې کول؛ ۲) د اوبو ژوروالی معلومول؛ ۳) پوول، څرول، پیول.

**پیوند** (paywánd) نـر. م. ۱) جوړ، پیوستون؛ ۲) تعلق، رابطه، ارتباط.

**پیوندي** (paywándi) ص. نب. ۱) پیوند لرونکي، پیوند شوی؛ ۲) سوابیره، بډبېره، هغه ببره چې د پیوند له امله غتېه مېوه نیسي.

**پیونګ** (piwáng) نـر. م. ۱) د ونې پرې کونه؛ ۲) د اوبو ژوروالی (تل) معلومونه.

**پیوونکی** (piwū́nkay) فا. نر. م. (ج. پیوونکي) ۱) د ونې پرې کوونکی؛ ۲) د اوبو د ژوروالی معلوموونکی.

**پیوی** (piwáy) نر. م. (ج. پیوي) وګ. پېکوی.

**پیه** (payá) ښځ. م. ۱) هغه تموته چې خوړو سترګي پرې تېرل کېږي؛ ۲) پیو، پویه، کویه، بزه.

**پی هیځ** (payhéc) نر. م. یو ډول ونه ده.

**پیېدل** (piedə́l) مص. ل ۱) ونه پرې کېدل؛ ۲) د اوبو ژوروالی معلومېدل.

**پېیل** (peyā́l) مص. مت. پېرل، پیول.

**پېیلی** (peyā́lay) مف. نر. م. ۱) پیرلی، پیودلی، ۲) منسلک، په چا پورې تړلی، پېیل شوی.

**پېیون** (peyū́n) نر. م. پېینه، اوډون، اوډنه.

**پېیونکی** (peyū́nkay) فا. نر. م. ۱) پیروونکی، پیوډونکی؛ ۲) ترتیبوونکی، برابروونکی، سموونکی.

**پېیوی** (peyawáy) نر. م. وګ. پیکوی.

# ت

**ت** (te) سخ. م. د پښتو ژبې د الفبې پنځم توری دی. بجدي ارزښت یې (۴۰۰) دی.

**تا** (tā) ض. م. ۱) د مفرد مخاطب ضمیر دی. ۲) ښځ. م. یوه تخته، د تنور پسور.

**تاب** (tāb) نر. م. ۱) تاو، گرمي؛ ۲) وس، طاقت؛ ۳) ځلک بریښ؛ ۴) پیچ و تاو.

**تابجن** (tābjan) ص. نر. م. تابژن، تاوجن، گرم.

**تابخانه** (tābxāna) ښځ. م. وگ. تاوخانه.

**تابدار** (tābdār) ص. نر. م. ج. ۱) تاو لرونکی، کوږ مېږ، تاو راتاو؛ ۲) روښان، ځلاند.

**تابدان** (tābdān) نر. م. درځه، دورځه، دریځه. په کوټه کې د رڼا لپاره جوړ شوی سوری.

**تاب راوړل** (tābrāwṛəl) مص. ل. طاقت کول، عمل تحملول، په ځان سختي منل.

**تابژن** (tābžán) ص. نر. م. وگ. تابجن.

**تابع** (tābiʕ) ص. نب. اېل، مطیع فرمانبردار.

**تابعداري** (tāb(iʕe)dārí) ښځ. م. اطاعت، متابعت، تابع کېدنه، غاړه اېښودنه.

**تابعیت** (tābiyát) نر. م. تابعوالی. تسلیموالی، فرمانبرداري.

**تابعیون** (tāb(ʕi.e)yūn) ښځ. م. فق. هغو کسانو ته وایي چې د حضرت محمد (ص) ځینې اصحاب یې لیدلي وي او پخپله حضرت محمد (ص) یې نه وي لیدلی.

**تابلو** (tābló) ښځ. م. (ج. تابلوگانې) ۱) انځور، تصویر؛ ۲) ننداره، منظره؛ ۳) جدول، دای گراف؛ ۴) هغه لوحه چې د هیئو او موسسو په سر باندې ځړېږي.

**تابوت** (tābūt) نر. م. اوږد صندوق دی چې له لرگي نه جوړېږي مړي په کې وړي او یې له همدې صندوق سره ښخوي.

**تابوت گر** (tābūtgár) نر. م. تابوت جوړوونکی.

**تابیا** (tābyā́) ښځ.م. ۱) تیاري، چمتووالی، بندوبست؛ ۲) چاره سنجونه، فکر، تدبیر.

**تابین** (tābín) نر.م. ۱) پیروي کونه؛ ۲) تجویز؛ ۳) ډله، قطعه؛ ٤) فا. نر.م. پیروي کوونکی.

**تاپ** (tāp) نر.م. درب، ترپ، هغه اواز چې د پښو له ایښودلو څخه پورته کېږي.

**تاپی** (tāpáy) نر.م. ۱) غولنګ، د زردالو کښته؛ ۲) فا. نر.م. تېښدونکی، ټپرېدونکی.

**تات** (tāt) ۱) وګ. تاټ. ۲) ص.نر.م. ترټری، هغه شوک چې ژبه یې بندېږي؛ ۳) غبرګېده.

**تاتار** (tātā́r) نر.م ۱) د شین شوېي ویلني په څېر یو بوټی دی؛ ۲) تتار، د مغولو د قوم لرغونی نوم دی؛ ۳) توند مزاج سړی.

**تاترین** (tātarín) ص.نر.م ۱) ډېر زور، ډېر کښته، ډېر کډی؛ ۲) نر.م. دوزخ.

**تاتمل** (tātmál) نر.م. ۱) زیاته مینه، ډېره تلوسه؛ ۲) تصور، خیال؛ ۳) هیله، تینګه غوښتنه.

**تاتې** (tāti) ښځ.م. (ج. تاتې) ۱) ترور، ابی، ببی، مشرو ښځو ته د احترام کلیمه؛ ۲) بوډۍ.

**تاثر** (tāsúr) نر.م. اثر منښه، اغېز منښه، د ژوند د غبرګونونو مفهوم.

**تاثیر** (tāsír) نر.م. ۱) اغېز، اثر؛ ۲) نښه، علامه.

**تاج** (tāj) نر.م. (ج. تاجونه) ۱) د پاچاهانو خول، د پاچاهانو توپی؛ ۲) چرخولک، د چرګ تاج.

**تاجدار** (tājdā́r) ص.نر.م. تاج لرونکی، ټولواک، ستر واکمن، اعلیحضرت.

**تاجر** (tāj(a,i)r) نر.م. سوداګر، تجار.

**تاجیل** (tājíl) نر.م. ځنډونه، مهلت اخیستنه، د کوم شي موده تعیینول، مهلت.

**تاخ** (tāx) نر.م. (ج. تاخونه) ۱) تاخچه، توکی، طاق؛ ۲) مج، بت، کالبوت.

**تاخت** (tāxt) نر.م. ۱) منډه، ځغاسته؛ ۲) حمله، برید، غوبه، یرغل.

**تاخوم** (tāxúm) نر.م. غریبه، یو ډول غرنی ونده،

**تاخون** (tāxún) نر.م. (ج. تاخونه) ۱) د زړه رنځ، د زړه غم، کړاک؛ ۲) غم، ماتم، وارخطايي.

**تاخیر** (tāxír) نر.م. ځنډ، معطلي، ډیل، ټال.

**تاداو** (tādáw) نر.م. بنسټ، تهداب، اساس، بېخ.

**تادي** (tādí) ښځ.م. (ج. تادۍ) بېړه، تلوار، عجله، شتاب، توندي، تېزي.

**تار** (tār) نر.م. (ج. تارونه) ۱) مزی، سپڼسی؛ ۲) د موسیقي د یوې آلې نوم؛ ۳) مو. د هغه سُر نوم دی چې له لومړي سپتک نه دوهم سپتک ته انتقال پرې کېږي؛ ۵) رابطه، لاره لرنه، مجازاً د مینې اړیکه لرل.

**تاراج** (tārā́j) نر.م. چور، لوټ، چپاول، تالان.

**تارپه تار** (tārpatā́r) ص. نر.م.ج. تیت و پرک، خپاره واره، شندلي.

**تارپیدو** (tārpidó) ښځ.م. وګ. تارپیډو.

**تارتار** (tārtā́r) ص.نر.م.ج. ۱) تیت، ګډوډ؛ ۲) رنګړی، رنګی، د ګڼ ضد.

**تارتوک** (tārtók) نر.م. تاتوک، سوغات، تحفه.

**تارک** (tārík) فا. نر.م. پرېښوونکی، ترک کوونکی، لاس اخیستونکی.

**تارکښ** (tārkáṣ) نر.م. غنه، جولا (عنکبوت) یو ډول خزنده ده چې وړوکی بدن او اوږدې پښې لري.

**تارکول** (tārkól) نر.م. قیر، د معدني تېلو ورو ستی د ختې په څېر پاتې شوې ماده.

**تارکی** (tārkáy) ښځ.م. وړوکې غنه، کوچنی تارکښ جولا.

**تارلومه** (tārlúma) ښځ.م. (ج. تارلومې) لومه (حلقه) د شارویو د لکیو وېښتان یا د اسونو د

بالونو وبښتان چې د مرغانو د نيولو لپاره
ترې په دام کې کار اخلي.

**تارو** (tārū) نر.م. تېهو؛ يو ډول مرغۍ ده، لويوالى
يې د زرک هومره دى، رنګ يې تور او سپين
سپين ټکي لري.

**تاروغاړى** (tārūğāṛay) ښځ.م. يو ډول مرز دى
چې توره غاړه لري.

**تاروګى** (tārūgay) نر.م. پرپره کي؛ يو ډول
تاروزى دى چې په ګلانو ګرځي.

**تارول** (tārawə́l) مص.مت. ١) په ستنه کې تار
اچول؛ ٢) تېتول، تار په تارول.

**تارومى** (tāromáy) نر.م. يو ډول ختکى دى.

**تارونار** (tāronā́r) ص.نر.م. ډنګر، ضعيف،
خوار، کمزورى، بته، د چاغ ضد.

**تاري** (tā́ri) ص.نب. نخي، هغه توکر چې د مالوچو
له سپنسيو څخه جوړ شوى وي.

**تارۍ** (tāráy) ښځ.م. لامبو، لمبا، لامبيه.

**تاريخ** (tā́rīx) نر.م(ج. تاريخونه) ١) نېټه، وخت،
سنه، د کوم شي د وخت تعيينول؛ ٢) اصطلاحاً
او په خاصه توګه يې د بشري پېښو مجموعه؛
٣) په عامه توګه يې د هر شي، د تېر وخت
مطالعې ته وايي.

**تاريخپوه** (tārīxpóh) نر.م. مورخ، تاريخ دان.

**تاريخچه** (tārixčá) ښځ.م. (ج. تاريخچې) لنډ
تاريخ، د کوم چا يا شي تېره لنډه يادونه.

**تاريخځپلى** (tārīxǰapálay) تاريخ وهلى،
تاريخي نوم بدى.

**تاريخساز** (tārīxsā́z) نر.م. تاريخ جوړونکى.

**تاريخ وار** (tārīxwā́r) ق. د کرونولوژي په ډول،
د تاريخ د ترتيب علم، تاريخ ګڼنه، د پېښو شرح
يا جدول او پر هغو اړوند تاريخونه.



**تاريخوال** (tārīxwā́l) تاريخګرا.

**تاريخواله** (tārīxwā́la) تاريخګرايي، تاريخيت.

**تاريخي** (tā́rīxī) ص.نب. نېټه يېز، په تاريخ پورې
اړوند، هغه پېښه چې تاريخ ته منسوبه وي.

**تاريخي پښويه** (tārīxīpṣóya) تېر مهالې
پښويه (ګرامر).

**تاريخي ژبپوهنه** (tārīxīžabpohána) اد.
تېرمهالې ژبپوهنه، تاريخي لسانيات.

**تاريز** (tārī́z) ص.نر.م. تاري، سپنسين، د تارونو،
د سپنسو.

**تاريک** (tārík) ص.نر.م ١) تياره، تت، د روښانه
ضد؛ ٢) هغه څوک چې منور نه وي.

**تاريکه** (tārī́ka) ص.ښځ.م ١) تياره، توره تياره،
توره دربه؛ ٢) تره غونې، ترورمى.

**تاريکي** (tā́rīkī) ښځ.م. (ج. تاريکۍ) ١) تياره؛
٢) تره غونې، ترورمى.

**تارين** (tā́rīn) ص.نر.م. تاريز، تاري، سپنسين،
د تارونو، له تارونو څخه جوړ.

**تاړ** (tāṛ) نر.م. ١) چپاو، شبخون، تاړاک؛ ٢) لويه
ګنه، غټ ګټ، لوى کمر؛ ٣) د لاروهونکو ډله؛
٤) د خرما په څېر لويه لوړه ونه ده چې د مېوې
اونه يې خوړې او خوندورې وي.

**تاړاک** (tāṛā́k) نر.م(ج. تاړاکونه) ١) چپاو، شبخون،
يرغل؛ ٢) کړاک؛ کړاو، رنځ، غم، مصيبت؛
٣) چور، تالان، لوټ، تاراج.

**تاړاک کوونکى** (tāṛākkawū́nkay) فا.نر.م.
١) تالاکوونکى، جړوونکى؛ ٢) تاړاکګر.

**تاړاکګر** (tāṛākgár) غلياکګر، يرغلګر، بلوسګر.

**تاړو** (tā́ṛū) نر.م. يو ډول لوبه ده.

**تاړه** (tāṛá) ښځ.م. ١) يو ډول بوټى دى؛ ٢) ص.
نب. بدمرغه، بدبخت، غمجن، کم بخت.

**تاړی** (tāṛay) ږندی، (لغوي تعريف) ضميمه.

**تاړی** (taṛay) ښځ. ج. چکې، ټکې، چکچکې.

**تاز** (tāz) نر.م. (ج. تازان) ججلداغ، پترتاز، یو ډول حشره ده چې د ونو شیره ځبېښي، خلک یې کبابوي او خوري یې.

**تازده** (tāzda) اد. دا کلیمه د قسم په ډول کارېږي، لکه: تازده = ته پوه شه.

**تازر** (tāzar) نر.م. څادر، جوېته، دوپټه، جیپټه.

**تازه** (tāzá) ص.نب. ۱) شین، غوړېدلی، ښېرازه، تنکی، دمړاوي او پخواني ضد؛ ۲) نوی.

**تازه دم** (tāzadam) ق. تازه دمه، هوسا، دمه، نوی.

**تازه کار** (tāzakār) نوکاری، مبتدي.

**تازی** (tāzáy) نر.م. (ج. تازیان) ۱) تازی، یو ډول ښکاري سپی دی؛ ۲) عربي اس، عربي.

**تازي** (tāzí) نر.م. (ج.تازیان) عرب، عربي.

**تاس** (tās) نر.م.نر.م. (ج. تاسونه) ۱) لګن، لوی ښانک، لوی تالی؛ ۲) پک، ګنجی؛ ۳) یو ډول توته ده.

**تاسپاني** (tāspāni) ښځ.ج. د پترلویه.

**تاسف** (tāsuf) نر.م ۱) افسوس، ارمان، پښېماني ۲) زړه سواندي، خواشیني.

**تاسلی** (tāsláy) نر.م. ۱) تاس؛ ۲) پتیله، وړه تاس، تاشله، ارتې خولې والادېګی.

**تاسو** (tāsu) ض.ج. تاسي، دمخاطب جمعي ضمیر.

**تاسیس** (tāsís) نر.م(ج. تاسیسات) ۱) اساس، بسټ؛ ۲) پرانېستنه؛ ۴) فق. ایجادول.

**تاسیسول** (tāsisawəl) مصر. مت. ۱) بنسټ اېښودل، پرانېستل، ۲) ابادول.

**تاش** (tāš) نر.م. پټې، قطعې، قطعه بازي.

**تاش په تاش** (tāšpatāš) ص. نب. دانه وانه، دانه دانه، تیت و پرک، تار په تار، ګډوډ.

**تاشله** (tāšalá) ص. نب. پراخ اورغی لوښی، هغه پراخ لوښی چې لږ ژور او خوله یې ارته وي.

**تاښه** (tāṣa) ښځ.م. (ج. تاښې) تاو کړی تار، مزی، تینګ تار، مرغلین تار، کلبچ مزی.

**تاغار** (tāğār) نر.م. تغاره، تغار، د خاورو هغه لوښی چې اوړه په کې خمیره کېږي.

**تاغارک** (tāğārák) نر.م. تشنک، د استسقا ناروغي.

**تاغاري** (tāğārí) ص. نب. ۱) خېټو، نسور؛ ۲) مستسقي؛ د تندې په ناروغۍ اخته.

**تاغو** (tāğū) نر.م. تاغګه، یو ونه ده چې ژېړ رنګې غونډۍ دانې نیسي او خلک یې خوري.

**تاغه** (tāğa) نر.م. تاغګه، یو ډول ونه ده چې خلک یې لرګی دنظرماتي لپاره په غاړه کې اچوي.

**تاق** (tāq) نر.م(ج. تاقونه) ۱) یو ستوی، بې جوړې، وتلی، یکه؛ ۲) دديوال تاخچه (تاخ).

**تاقچه** (tāqčá) ښځ.م. (ج. تاقچې) تاخچه، تاخ.

**تاقی** (tāqáy) ښځ.م.ج. ۱) کړکی، دریڅه؛ ۲) دسوي غار؛ ۳) د چاکو یا چړې تېکی.

**تاک** (tāk) نر.م. (ج. تاکونه، تاکان) ۱) د انګورو بوټی، انګورتاک، د کور بوټی؛ ۲) د غره کمر؛ ۳) لپه؛ ٤) طاق، د جفت ضد.

**تاکاو** (tākāw) نر.م. زبرزمینی، تاکوي.

**تاکک** (tākák) نر.م. نازک، تنکی، نوی رټېدلی تاک.

**تاک له تاکه** (tāklatāka) ص. نب. لالهانده، در په در، سروهلی بروهلی، سرګردان.

**تاکی** (tākáy) ښځ.م. ج ۱) د کجوري یا خرما زړی؛ ۲) هغه پاتکی چې کوهي ته د کورېدو لپاره جوړېږي؛ ۳) کوپی، کنده، ژوره؛ ٤) یو ستوی چونګ (cuang) لپه.

**تاکید** (tākíd) نر.م. ټینګار، بایښتیا، بیا بیا ویل، ټینګښت، چینه.

**تاکیداً** (tākidán) ق. په ډېره ټینګښت، په کلکه، په باعښتیا، په بیا بیا ویلو.

**تاکیدي** (tākidí) ص. نب. د تاکید خاوند، تاکید کوونکی، دقیق، غور کوونکی.

**تاګټ** (tāgáṭ) نر.م. ګاټي، میتر غاټي، میرګاټي، د ورو نجونو یو ډول لوبه ده.

**تاګی** (tāgáy) ښځ.م.ج. د کېږدۍ یوه تایاتهه.

**تال** (tāl) نر.م. (ج. تالونه) ۱) لوی ښانک، مسي تاس: ۲) د غوا اواز: ۳) د مصنوعي مالګې ډنډ ۴) چال چلند: ۵) ولور: ۶) تالا، تاله: مو. د تولو شیانو منظمو خوځېدو او د هغو راز راز اندازو ته د موسیقي په اصطلاح لی وایي.

**تالا** (tālā) ص. نب. چور شوی، لوټ شوی، تباه.

**تالاب** (tāláb) نر.م. (ج. تالابونه) د اوبو ډنډ، جوهر.

**تالاترغا** (tālātarğá) ص. نب. لوټ شوی، تالا والا، تالاترغې، خباره وارد.

**تالار** (tālár) نر.م. (ج. تالارونه) سالون، لوخونه، لویه کوټه، غټه کوټه، د ناستې او غونډې کوټه.

**تالاش** (tālāš) نر.م. ۱) تلاش، لټون، لټونه، غوښتنه، ډونډ، کتنه: ۲) بېړه، چالاکي.

**تالاشي** (tālāší) ښځ. لټونه، تلاشي، کتنه.

**تالاکول** (tālākawə́l) مص. مت. لوټول، تالان کول، چورول، لوټ مار کول.

**تالاکېدل** (tālākedə́l) ښځ.م. چورکېدل، لوټ کېدل، شوکېدل، لوټېدل.

**تالاګر** (tālāgár) فا. نر.م. تالاکوونکی، لوټوونکی، تالاني، لوټمار، تاراجوونکی.

**تالان** (tālán) نر.م. (ج. تالانونه) لوټ، شوکه.

**تالانګر** (tālāngár) لوټمار، لوټوونکی، چپاولګر.

**تالاني** (tālāní) ص. نر.م. ۱) تالاګر، لوټمار: ۲) بربادي، مسرف، خرڅي.

**تالا والا** (tālāwālá) ص. نب. ۱) لوټ شوی، چور شوی، تالاترغا: ۲) خورووور، ګډوډ.

**تالګر** (tālgár) فا. نر.م. تال جوړوونکی، هغه څوک چې د موسیقۍ د یوې پارچې تال تنظیموي.

**تالنده** (tālánda) ښځ.م. (ج. تالندې) تنا، د اسمان غورا، د اسمان ګړزا، د اسمان غرهار.

**تالو** (tālú) نر.م. کومی، حلق، د پزې له ډننیو سوریو څخه د پاسني ژامې د غاښونو تر اوریو پورې د خولې داخلي برخه.

**تالوپورته کول** (tālūpurtakawə́l) مص. مت. ژبې جګول، ژبې کتل «کله چې د کوچني ژبې لوېدلې وي» نو د یوې ګوتې په وسیله و هغه ځای ته د دوا اچونه.

**تالوده** (tālūdá) ښځ.م. (ج. تالودې) پیاوه، شکنه، ساړه تاوده، چټک ښوروا.

**تالوییز** (tālūyíz) په تالو کې ادا کېدونکی: کامي، حلقي.

**تاله** (tālá) ښځ.م. (ج. تالې) ۱) بخت، برخه، طالع: ۲) یو ډول وابنه دی: ۳) د دوو غونډیو ترمنځ خوړ.

**تالی** (tāláy) ښځ.م. ګردی فلزي بشقاب، ګردی فلزي کاسه.

**تالې** (tālé) ښځ.ج. طالع، بخت، اقبال، تاله.

**تالي څټ** (tālicaṭ) ص. نر.م. ۱) تالي څټونکی، تالي څټی، تیارخور، کاسه پاک: ۲) غوړه مال.

**تالیف** (tālíf) نر.م. (ج. تالیفونه) ۱) لیکنه لکه د کتاب، مقالې یا کوم بل اثر: ۲) دوستي کونه: ۴) ترکیب: د دوو شیزونو تولونه او سر یو ځای کونه.

**تالیفول** (tālifawə́l) مص. مت. ۱) لیکل، جوړول ۲) په لفافه کې راوستل؛ ۳) الفت سره ورکول.

**تالې من** (tālemán) ص. نر. م. بختور، بختیار، نېکمرغه، طالعمن، د بخت خاوند.

**تام** (tām) ق. ۱) پوره، بشپړ، ټول، تام؛ ۲) نر. م. خپلواکتوب، یا پوره خپلواکي.

**تامبووالي** (tāmbūwālí) ښځ. م ناهنې، مشاطې، سینګاروونکې، هغه ښځې چې له ناوې سره د سینګارولو او جوړولو په وخت کې وي.

**تامبوزی** (tāmbūzáy) نر. م. تامبوزی، بوشه، تسبوزی، تربوزک، کوچبیز، مول، ورپوزی.

**تامبول** (tāmból) نر. م. د غنې شاله.

**تامبه** (tāmbá) ښځ. م. (ج. تامبې) ۱) تمبو، خیمه، کېږدۍ؛ ۲) مس، سرول؛ ۲) جست، ژېړ (فلز).

**تامبېړ** (tāmbéṛ) نر. م. (ج. تامبېړونه) ۱) نری نښه، جګه او ښویه تیږه چې ختل وربانديې ګران وي؛ ۲) له یوه ګټ ځخه یوه جلا شوې نری او پلنه تیږه.

**تامبېړی** (tāmbeṛáy) ښځ. م. ۱) د ښېړي ځپو؛ ۲) تمبېړی، دورې کړکۍ یا دروازې یو پټ یا پله.

**تامل** (tāmúl) نر. م. غور کونه، فکر کونه، سنجونه.

**تامین** (tāmín) نر. م. ۱) برابرونه، تیارونه؛ ۲) په امن کې راوستنه، رامنځ ته کول، ساتنه.

**تامینول** (tāminawə́l) مص. مت. ۱) برابرول، رامنځ ته کول، تیارول؛ ۲) په امن کې راوستل، ساتل، اطمینان ورکول.

**تان** (tān) نر. م. (ج. تانونه) ۱) توپ، توکی، د یو کر یو ... ټلې اندازه چې له (۲۰ - ۵۰) مترو پورې ... ؛ ۲) اس. نر. م. رغونه، جوړښت؛ ۳) ښوی ... ؛ ۴) ... د منجرې یو ډېر مشکل اواز دی.

**تانپوره** (tānpurá) ښځ. م. د ختیځې کلاسیکې موسیقۍ یوه آله ده چې ستار ته ورته ده.

**تاند** (tānd) ص. نر. م. ۱) تازه، تنکی؛ ۲) ښېرازه، سمسور؛ ۳) نر. م. راکښل شوی، د موسیقۍ په سیمې آلاتو کې کلک راکښل شوې تارونه.

**تاندتیا** (tāndtyā́) ښځ. م. تازه والی، سمسورتیا، شینوالی.

**تاندلبان** (tāndlabā́n) ص. نر. م. ج. ځوانیمرګ، نیمه خوا، نامراده.

**تاندوبه** (tāndobá) ښځ. م. (ج. تاندوبې) اوې ځمکه، اوبیزه ځمکه.

**تاندوتازه** (tāndotāzá) تازه او تاند، ډېر تازه، ښېراز، ترو تازه.

**تاندوښېراز** (tāndoṣerā́z) تازه او تاند، ترو تازه.

**تاندول** (tāndawə́l) مص. مت. ۱) سمسورول، ښېرازول؛ ۲) د وړیو د تار رېشلو په وخت غځول او تاوول؛ ۳) راکښل، ټینګول.

**تاندوله** (tāndolá) ښځ. م. (ج. تاندولې) سورګلی، تندولی، یو ډول سابه دي.

**تانده** (tā́nda) ص. ښځ. م. ۱) ښېرازه، سمسوره؛ ۲) رواني اوبه؛ ۳) امیدواره ښځه؛ ۴) النګه غوا؛ ۵) نر. م. د وړیو د یو ګز په اندازه غښتل شوی تار؛ ۶) هغه بند چې د اوبه خور لپاره تړل شوی وي.

**تانده بانده** (tāndabāndá) ښځ. م. (ج. تاندې باندې) تېرېدنه؛ کړېدنه، تړېدنه، تېېدنه.

**تاندېدل** (tāndedə́l) مص. ل. ۱) ښېرازېدل، تازه کېدل؛ ۲) امیدوارېدل.

**تانسته** (tānistá) ښځ. م. (ج. تانستې) تنسته، تانې، دغالی، ګلیم د جوړولو پر وخت طولاً تارونه غځول.

**تانګ** (tāng) نـر.م. ۱) د خـرمنې هغې پټۍ چې د آس زين ورباندې ټينګ شـوی وي؛ ۲) د آس، خره يا ... ګـېډبند؛ ۳) د هنـدوانې، بادرنګ او انګورو د تاکو ټـېلۍ.

**تانګو** (tāngó) ښځ.م. وګ.: تانګو.

**تانګۍ** (tāngáy) ښځ.م. ۱) تانګ، هغه پړی چې د بارګير (خره، قچر او...) له خېټې راتاوېږي؛ ۲) ونډنۍ؛ ۳) تانګۍ، د وښو پړی.

**تأنيث** (tānís) نـر.م. ښـځينه جنس، ښځينه.

**تاڼه** (tāṇá) ښځ.م. (ج. تاڼې) د پوليسو مأموريت.

**تاڼه وال** (tāṇawā́l) ص.نـر.م. (ج. تـاڼه والان) ۱) د تاڼې مشر؛ ۲) د پوليسو مامور.

**تاڼۍ** (tāṇáy) ښځ.م ۱) تغرګی (ګلم)، وړوکی تغر؛ ۲) د پلور او پېر تړون؛ ۳) د جولا تانسته.

**تاو** (tāw) نر.م. ۱) تودوالی، تپ؛ ۲) ګـړنديتوب، چټکـتيا؛ ۳) زور، شـدت؛ ٤) غـوسه، قهر؛ ۵) ول، پېـچ؛ ٦) نسخـوړی؛ ۷) کـوږوالی؛ ۸) بربېښ؛ ۹) غښتنه، بڼنه، بوڼنه.

**تاوان** (tāwā́n) نر.م. ۱) زيان، ضرر؛ ۲) جـرمانه، پور؛ ۳) په غاړه کېدنه، د نقصان تلافي.

**تاوانجن** (tāwānján) ص. نـر.م. ۱) زيانمـن، تاواني، نقصاني؛ ۲) معيوب، عيبجن.

**تاوانول** (tāwānawә́l) مـص.مت. ۱) زيانـول؛ ۲) د زيان رسولو بدل اخيستل؛ ۳) خـرڅ کـول، لګول؛ ٤) ضايع کول؛ ۵) تپ کول، په چا باندې تاوان بارول، ورتاوانول.

**تاواني** (tāwāní) ص.نب. ۱) خـرڅي، نقصـاني، مسرف، لګاوو؛ ۲) زيانمن، نقصانمن؛ ۳) سخي ٤) عيبجن، معيوب.

**تاوانېدل** (tāwānedә́l) مـص.ل. ۱) تاواني کېدل، زيانمن کېدل؛ ۲) تپېدل، ډنډېدل.

**تاوتاو** (tāwtā́w) ص.نر.م. ۱) کوږوږ، تاوراتاو، منحني؛ ۲) غوسه.

**تاوتريخوالی** (tāwtrixwā́lay) زورزياتی، بدچلند، اخ و ډب، اورلګاوی، خشونت.

**تاوخانه** (tāwxāná) ښځ.م. تاوخـونه، تونخانه، هغه کوټه چې تر غولي لاندې يې اور بلېږي.

**تاوده** (tāwdә́) ص.ج. ۱) د تـود جمع؛ ۲) جـن. شکنه، پياوه، ښورواګی.

**تاوده ساړه** (tāwdәsā́ṛә) ج. ۱) سـړې تـودې، ښې او بدې، خوږې او ترخې، غمونه او ښادۍ؛ ۲) جن. ترخې اوبه، زيمنه، زومنـه، شکنه، پياوه، ښوروا‌ګی.

**تاوراتاو** (tāwrātā́w) ص. نـر.م. ۱) کـوږوږ؛ ۲) نغښتی، منجيله؛ ۳) ډېر په قهر.

**تاورنګون** (tāwrangū́n) نـر.م. د بـودۍ تـال، سره زرغونه، شنه زرغونه، شنه سره، پېنګنه.

**تاوړی** (tāwṛáy) نر.م. تمبړی، تاتکی، ستـه کی، د ختې او سمتو وړلو او سپنيز ښانک.

**تاوکښ** (tāwkáṣ) نر.م. ۱) تبه ايسـتونکی، تبه لرې کوونکی؛ ۲) کږلېچ، تاوراتاو سړک يا تاو راتاو لاره.

**تاوکښل** (tāwkṣә́l) مص. مت. ۱) تبه لرې کول؛ ۲) زړ راتلل؛ ۳) زړه سړول، غچ اخيستل.

**تاوکول** (tāwkawә́l) مـص. مت. ۱) درد کـول؛ ۲) حرارت او بخار کول؛ ۳) قهر پيدا کول.

**تاووس** (tāwū́s) نـر.م. طاؤس، يو ډول مـارغه دی چې ښکلې او رنګينې بڼکې لري.

**تاوول** (tāwawә́l) مص.مـت. ۱) غـړل، غښتل؛ ۲) خرڅ ورکول، تاو کول، چورلول.

**تاوون** (tāwū́n) نر.م. طاعون (plague)، خطرناکه او ساري ناروغي ده.

**تاووني** (tāwūnáy) ص. نـر.م. تاوون وهلى، په طاعون اخته، طاعون نيولى، طاعوني.

**تاوه** (tāwá) ښځ.م. (ج.تاوې) ۱) توه، د اوبه خور لپاره موقتى پوله؛ ۲) ادې، د دوو پولو په منځ کې يوه ترانګه ځمکه.

**تاوى** (tāwáy) نر.م. (ج. تاوي) هغه آله چې پـرې ته پرې تاو ور کول کېږي.

**تاويترې** (tāwitráy) ښځ.م. تويترې، لوى هار، يو ډول د زرو امېل دى چې د زرو ګينګري په کې لګېدلي وي.

**تاويتک** (tāwiták) نر.م. ۱) د زرو هغه تعويذ چې ښځې يې د پسول په ډول استعمالوي؛ ۲) ص. نر.م. سخاسرى، برين، خيرن، چټل.

**تاويځى** (tāwiǰáy) ښځ.م. يو ډول سـپين او تور مارغه دى چې شند ته ورته دى.

**تاوېدل** (tāwedə́l) مص.ل. ۱) تاو، خـورل، غښتل کېدل؛ ۲) چورلېدل، څرخېدل.

**تاويل** (tāwíl) نر.م. ۱) تعبير، شرح، تفسير، مانا کونه، دخوب تعبير؛ ۲) شرعي بهانه؛ ۳) خپل اصل ته بېرته ګرځول.

**تأهل** (tāhúl) نر. م. ښځه کونه، عيال درلودنه.

**تايب** (tāyíb) فا.نر.م. تائب، توبه کوونکى، توبه ګارېدونکى، توبه ايستونکى.

**تايپه** (tāypá) ص.نر.م. مو. د ختيـزې کلاسيکي موسيقۍ په تالونو کې يو متداول تال دى.

**تاييپي** (tāyipí) ج. ۱) وچې منډتې، وچ زردالو.

**تاييد** (tāyíd) نر.م. حمايت، تصديق، ملاتړ.

**تاييدول** (tāyidawə́l) مص.مت. مـلاتړ کـول، حمايت کول، تصديقول، تائيدول.

**تايي** (tāyí) ښځ.م. بدلـه پنه، بدله مـوچپه، بدله کوښه.

**تب** (tab) نر.م. (ج. تبونه) ۱) ترياک، زهرمهره، هغه دوا چې د زهرو اثر ورباندې لـرې کېږي؛ ۲) تکور، تبل؛ ۳) و.ګ. تپ.

**تبا** (tabā́) ص. نب. تباه، برباد، ورک، پوپنا.

**تباخ** (tabā́x) نر.م. تبخ، ښانک، تال، سنک، تلبر.

**تبادله** (tabādulá) ښـځ.م. (ج. تبادلې) بدلـونه، اليشونه، عوض کونه، بدلون، ادل بدل.

**تبار** (tabā́r) نر.م ۱) تبر، خېل، کـهول؛ ۲) قبيله، قوم، طايفه؛ ۳) پښه، ختېه، اصل، نسب.

**تبارز** (tabārúz) نر.م. ۱) ښکارېدنه، څرګندېدنه؛ ۲) مشهورېدنه؛ ۳) لوړېدنه، وتنه؛ ٤) يو لـه بله مبارزه کول.

**تباشير** (tabāšír) نـر.م. يو ډول سپينه دوايي ده، له هنـدي نى نه چې د بامـب يادېـږي رااېستل کېـږي؛ ۲) سـپينه ماده چې په توره تختـو ورباندې ليکل کېږي.

**تباه کوونکى** (tabākawū́nkay) فا.نـر.م. له منځه وړونکى، پوپنا کوونکى.

**تباهي** (tabāhí) ښځ.م (ج. تباهۍ) بربادي، ستېدنه غرقېدنه، له منځه تلنه.

**تباين** (tabāyún) نر.م. بېلوالى، جـلاتوب، د دوو شيزونو تر منځ توپير او بېلتون.

**تبجن** (tabján) ص.نر.م. تبې نيولى، په تبې اخته، تبه لرونکى.

**تبخ** (tabáx) نر.م. ۱) تبک، تبق، تبکى، کوراغ- د ځاروېو يو ډول ناروغي ده؛ ۲) لوښى، کنډول؛ ۲) د مرې کور ته دوډۍ وړونه.

**تبخى** (tabaxáy) نر.م. (ج. تبخي) تبغنه، تبۍ.

**تبخى** (tabaxáy) ښځ.م. کاغۍ، زاغچکه.

**تبخير** (tabxír) نر.م. براس، بخار، تاو، يوه عمليه ده چې مايعات په بخار بدلېږي.

**تبدیل** (tabdíl) ص. نر.م. ۱) بدل شوی، بل ځای ته لیږل شوی؛ ۲) ونج، الش، عوض.

**تبدیلي** (tabdilí) ښځ.م. (ج. تبدیلۍ) بدلېدنه، عوضېدنه، الشېدنه، ونجېدنه.

**تبر** (tabár) نر.م. (ج. تبرونه) ۱) تبرګی، تبرزین؛ ۲) تبرغالی، د ښځو د کمیس تخرګ جېب.

**تبرزین** (tabarzín) نر.م. تبرګی، تبر، یو ډول تبر.

**تبرغان** (tabarğán) نر.م. ۱) یو ډول سپین ګلی بوټی دی؛ ۲) یو ډول ځناور دی.

**تبرک** (tabarúk) نر.م. ۱) مبارک، خورده، برکتي شیز ۲) یو شیز په نېک ښوګڼ نیول؛ ۳) د توپک رخې؛ ۲) د ارهټ ولاړه ستنه؛ ۳) کلا، حصار.

**تبرکنۍ** (tabarakanáy) نر.م. تیرکونی، کوترغالی، درې کونجیزه ټوکر چې ښځې یې له خپل ګرېوان سره ګنډي او د جېب په ډول استعمالېږي.

**تبرګی** (tabargáy) نر.م. (ج. تبرګي) ۱) وړوکی تبر، کمکی تبر؛ ۲) تبره، تبرزین.

**تبریک** (tabrík) نر.م. ۱) مبارکي، ښادمني؛ ۲) چا ته د برکت دعا کول.

**تبریکي** (tabrikí) ښځ.م. مبارکي.

**تبړه** (tabaṛá) ښځ.م. (ج. تبړې) تپنه، درغنه، د کاڼي پلنه تبۍ، د کاڼي پلنه تخته، پلنه تیږه.

**تبز** (tabáz) نر.م. ۱) نرم کاڼی، شوکاڼی، سپلکه، سلیټ؛ ۲) پلنه، او اواره تیږه.

**تبژن** (tabžán) ص. نر.م. و.ګ. تبجن.

**تبسم** (tabasúm) نر.م. مسکا، مسېدنه، مسېده، په شونډو کې نرۍ مسکا.

**تبصره** (tabsirá) ښځ.م ۱) یو موضوع روښانونه؛ ۲) یادونه، نوټ؛ ۳) بیان کونه.

**تبعه** (táb(a)ʕa) ص.ج. ۱) د تابع جمع، تابعان؛ ۲) تابعیت لرونکی، اوسېدونکی.

**تبعید** (tabʕíd) نر.م. ۱) شړنه، له ملک نه ایستنه، له خپلې هېواد نه د باندې ایستنه.

**تبعیض** (tabʕíz) نر.م. توپیر، فرق، یو څه ښه ګڼنه، ځینې تر ځینو لوړ ګڼل.

**تبکی** (tabakáy) ښځ.م. غالېچک، د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**تبګی** (tabgáy) ښځ.م. وچکۍ، محرقه، لویه تبه.

**تبل** (tabə́l) مص. مت. ۱) تکوروول، تب وړکول، خوږمن ځای په ګوم ګرم شیز باندې تودول؛ ۲) داغل، داغ وړکول؛ ۳) نر.م. وهم، دار، ترهه؛ ٤) شرمېدنه، کچه کېدنه، خجالت.

**تبلور** (tabalwór) نر.م. ۱) د بلور په شېر کېدنه؛ ۲) ک. د یوې محللې مادې بېلتون دی.

**تبلول** (tabalawə́l) مص.مت. ۱) ډارول، وېرول، یېرول؛ ۲) شرمول، کچه کول.

**تبله** (tablá) ښځ.م. طبله، تبلۍ، دوپړی، دوکړه، د موسیقۍ یوه آله ده.

**تبلی** (tabə́lay) مف.نر.م (ج.تبلي) ۱) تکور شوي، تکور کړی؛ ۲) دردمند، تپي.

**تبلېدل** (tabaledə́l) مص. ل. ۱) شرمېدل، کچه کېدل؛ ۲) نېښي وړ رسېدل؛ ۳) ډارېدل.

**تبلیغ** (tablíğ) نر.م. ۱) پیغام رسونه؛ ۲) وعظ، نصیحت؛ ۳) پروپاګند کونه.

**تبلیغول** (tabliğawə́l) مص.مت. ۱) خبر یا پیغام رسول؛ ۲) وعظ، نصیحت؛ ۳) پروپاګند کول.

**تبلیغي** (tabliğí) ص. نب. مبلغ، وعظ کوونکی، تبلیغ کوونکی، واعظ.

**تبنکي** (tabankí) نر.ج. ۱) تینکي، د دماغ پردې مه تېر کونه؛ ۲) د پوزې تینلوني.

**تبنګ** (tabáng) نر.م. ۱) و.ګ. تبنه؛ ۲) مجمه، ګردي لوی او پلن لوښي.

**تبنه** (tabə́na) ښځ.م. (ج. تبنې) ټکور، ټکوروونه، تب وركونه، تبنګ.

**تبنۍ**(1) (tubṇə́y) ښځ.م. د تنور واله هغه تخته چې پرې وریاندې ایښودل کېږي.

**تبنۍ**(2) (tabaṇáy) ښځ.م. تبۍ، د کانې پلنه تخته.

**تبور** (tabúr) نر.م. تپور، سینه بند، تي پوښ.

**تبه** (tə́ba) ښځ.م. (ج. تبې) د ناروغۍ حرارت، د بدن د تودوخې درجه او د نبض سرعت زیاتېدل.

**تبه برېښ** (tababréṣ) نر.م. سینه بغل، ذات الریه، دسږو التهاب، نیومونیا.

**تبی** (tabáy) نر.م. (ج. تبي) ۱) په کتنغ باندې د سرو کړو غوړو اچونه؛ ۲) لمسونه، تودونه.

**تبۍ** (tabə́y) ښځ.م. تبغنه، د اوسپنې هغه آله چې ډوډۍ پرې پخوي.

**تبۍ توده** (tabaytawdá) ښځ.م. د کوچنیانو په لوبه کې یوه کلیمه.

**تبي زون** (tabezún) نر.م. خولې کونه، په ټکور (تبلو) سره خولې کونه.

**تبۍ غار** (tabayġár) نر.م. د کوچنیانو لوبه ده.

**تبي کانۍ** (tabikaṇáy) نر.م. داغ یا د تنکۍ کانۍ، یو کانی دی چې ښځې یې په اور کې سور کوي په خمځۍ کې لس غوړي اچوي او هغه کاني په خمځۍ کې ږدي، خمځۍ له کاني سره ننګولي کې ښکته کوي.

**تپ** (tap) نر.م. (ج. تپونه) ۱) ګنه ګونه، اله ګوله؛ ۲) تباهي؛ ۳) داغ، نښه، خال؛ ٤) تاو، براس؛ ٥) توس، پلتن.

**تپا** (tapā́) ښځ.م (ج. تپاوې) ۱) ناکراري، نارامتیا، نول، اندېښمني؛ ۲) د تپ تپ اواز.

**تپاس** (tapā́s) نر.م. ۱) لټون، تلاش؛ ۲) زیار، کوښښ، ستونزه.

**تپاک** (tapā́k) نر.م. ۱) حرص، لالچ؛ ۲) ناقراري، تلوسه، نارامتیا (د مینې د زیاتوالي په وخت کې)؛ ۳) خاطر، مدار، عزت، لحاظ.

**تپال** (tapā́l) نر.م. د لمدو ختو هغه پینډه چې په دېوال تپل شوې وي.

**تپانچه** (tapā́nča) ښځ.م. تمانچه، تورنچه.

**تپاند** (tapā́nd) ص. نر.م. ۱) ناقراره، ناکراره، نا ارامه؛ ۲) پرېشانه.

**تپانده** (tapā́nda) ښځ.م. خټ موښې، ګل ماله، د ختو رمبی، خټ مښه، د اخېړولو آله.

**تپانی** (tapā́ṇay) نر.م. (ج. تپاني) دبی، ډبلی، شوباړی، هغه لرګی چې د مینځلو په وخت کې پرې جامې او کالي ټپوي.

**تپایي** (tapā́yi) ښځ.م. درې پښیز مېز.

**تپ تپ** (taptáp) نر.م. هغه اواز دی چې سپي ته په ښکار پسې اچولو پر وخت ویل کېږي.

**تپ تپنۍ** (taptapanáy) نر.م. پوپک، دختو ویښتلو شپېلۍ، هغه شپېلۍ چې د ختو وړې مرده کۍ په کې پو کېږي او مرغۍ پرې ولي.

**تپ تور** (táptor) ص. نر.م. ۱) ړوند، تپ ړوند، په سترګو تپ، ببخي ړوند؛ ۲) تک تور.

**تپ تېر** (taptér) نر.م. تک تور، تکه توره تیاره، تورتم، ترږمۍ، توروږمۍ.

**تپرکی** (taparkáy) نر.م. (ج. تپرکي) پترکی، پتری، شپرکی، خیرۍ، د زخم پوتکی، د زخم پتری.

**تپړا** (taparā́) ښځ.م. تپنها، یوه لرګینه اله ده چې کولالان پرې خاورین لوښي جوړوي.

**تپړان** (taparā́n) ص. نر.م. پیت پوزی، پیتی، بونجی، مونجی.

**تپسته** (tapásta) ق. وروسته، بیا، پس ته.

**تپک** (tapák) نــر.م. ۱) د ډول غــږ؛ ۲) هغه تخته چې ختګر وربانديې د دېوال پخسه تپوي.

**تپل** (tapə́l) مص. مت. ۱) په دېوال خته پورې کول؛ ۲) په چا پورې څه خبره تړل؛ ۳) په غاړه کــول، ذمه وهل؛ ٤) کالیو ته پیوند اچول؛ ٥) ص.نر.م. تپلی، پمن مخی، تپلی، برګ مخی.

**تپلی** (tapə́lay) مف. نــر.م. ۱) په دېــوال پورې ویښتلې خته؛ ۲) هغه شیز چې د بل شیزله پاسه ګډوډ نښلول شوی وي؛ ۳) شورب، مزی.

**تپند** (tapánd) ص.نر.م. ورسترګی، توسن، حریص.

**تپندی** (tapandáy) نر.م. دست پنا، د ختګــرې د دمسالې اخېستلو او اواړولو آله..

**تپنه** (tapəna) ښځ.م. (ج. تپنې) ۱) ختې په دېوال تپنه؛ ۲) په یو چا د تور تړنه.

**تپڼ** (tapáṇ) ص.نر.م. تپړ، تبڼ، لویه هواره (ګټه)، پلنه او هواره (تیږه).

**تپڼا** (tapaṇā́) نر.م. و.ګ. تپړا.

**تپور** (tapúr) نر.م. و.ګ. تبور.

**تپوری** (tapúray) نر.م. د ښځو د کمیس ګــرېوان چې په وریښمو ګنډل شوی وي.

**تپوس** (tapós) نر.م. ۱) پوښتنه، ګروېږنه؛ ۲) حال احوال معلومول، معلومات کول؛ ٤) سوال.

**تپول** (tapawə́l) مص.مت. ۱) بېقراره کول، څورول ۲) پوپنا کول، له منځه وړل؛ ۳) ښــکارې سپی په ښکار پسې غار ته ورتو شول او ورشکارول؛ ٤) مص. مت. ٥) ماشوم د ویده کــولو لپاره په لاس تپول؛ ٦) ورو ورو تلل؛ ۷) لټول.

**تپونکی** (tapū́nkay) فا.نر.م. ۱) هغه څوک چې ختې په دېوال تپي؛ ۲) د تبخې ختین سرپوښ.

**تپه** (tapá) ښځ.م. (ج. تپې) ۱) ډلــه، تولی، قبیــله، خېل، طایفه؛ ۲) د هیوا دیوه بــرخه، عــلاقه او سیمه؛ ۳) مــو. یو ډول سندره ده؛ ٤) د تیارې له کلیمې نه مخکې راځي.

**تپه تیاره** (tapatyārá) ښځ.م. (ج. تپې تیارې) تورتم، ښځې تیاره، زیاته تیاره.

**تپی** (tápay) نر.م. داغ، خال، خاپ، تکی.

**تپی تپی** (tapaytapáy) ص. نر.م. داغ داغ، خال خال، تکي تکي، خاپ خاپ.

**تپۍ** (tapə́y) ښځ.م.ج. تپۍ، تپیاکه، څپیاکه، هغه غوشایې چې د سوځېدو لپاره په ګردې ډول وچېږي.

**تپېدل** (tapedə́l) مص. ل. ۱) ښځې له منځــه تلل؛ ۲) د ښکارې سپې په ښکار پسې غار ته ننوتل؛ ۳) د ویده کــولو لپــاره ماشوم ورو ورو په لاس تپېدل؛ ٤) ورو ورو لاس یا پښې وهل کــېدل؛ ٥) د زره غورځېدل؛ ٦) د کمزورۍ یا ړوندوالي په وخت کې لاس او پښې غورځېدل یا تپرېدل؛ ۷) نارامېدل، ناکراره کېدل.

**تت** (tat) ص. نــر.م. ج. ۱) کــم رڼ؛ ۲) کم رنګه؛ ۳) خړ؛ ٤) کمزوری، ورو؛ ٥) ترټری؛ ٦) خفه، زهیر؛ ۷) مراوی؛ ۸) خجل؛ ۹) نر.م. جــوخت، پله پورې؛ ۱۰) تینګ؛ ۱۱) ګڼ (سیوری).

**تتبع** (tatabúʼ) ښــځ.م: ج. ۱) څــېړنه، پلټنه، تحقیق؛ ۲) تعقیبول، په کوم څه پسې تګ.

**تت خپلواک** (tatxpəlwā́k) (ګــر.) ســپک خپلواک، ناخجن واول.

**تترا** (titrā́) عد. ص. څلور، د څلورو برخو لرونکی.

**تتراسلبل** (titrāsilabə́l) نر.م. څلور سېلابیزه کلیمه.

**تتراکورډ** (titrākórd) نــر.م. ۱) مو. د ساز یوه لــرغونې آلــه ده؛ ۲) څلورنوتیزه مېزان چې نیم اکتاو وي.

**تتراګرام** (titrāgrā́m) نر.م. ۱) څلور توریزه کلیمه؛ ۲) هن. څلور ضلعي، څلورګوټیز، څلورګوټی.

**تتراګون** (titrāgón) نـر.م. څلورګوټی، څلور ګوټی، څلور اړخي.

**تترالوجي** (titrālojí) ښځ.م. د ډرام څلور پردې، څلور پرده ییزه ننداره.

**تترامیټر** (titrāmiṭár) نـر.م. څلـور وزنی، څلور وتدی شعر.

**تتری** (tatráy) نر.م. یو ډول سپین کانی دی.

**تتړ** (tatáṛ) ص.نر.م. ککړ، لړلی، ناولی، چټل.

**تتړی** (tatṛáy) ص.نر.م. (ج. تتړي) تړتړی، تتله.

**تتلک** (tatlák) نر.م. تلتک پرستن، شپرکه.

**تتلی** (tatláy) ص. نر.م. وارخطا، پریشانه.

**تتمه** (tatimá) ښځ.م (ج. تتمې) ۱) بقایا، بچ شوی؛ ۲) ضمیـمه، د کتاب هغه وروستی بـرخـه چې ورسره زیاته شوې وي، بشپړیز.

**تتوالی** (tatwā́lay) نر.م. ۱) لیډه روڼتیا، کمزوري رڼا، خړوالی؛ ۲) پنډوالی، پېړوالی، ضخامت؛ ۲) پریشانتیا، خفه توب.

**تت و تېز** (tat-o-téz) د ګاډي څراغ تېز و تتول، ډیم و فول.

**تتول** (tatawə́l) مص. مت. ۱) رڼا کـمول؛ ۲) پلته تیتول؛ ۳) یو ځای کول، راټولول؛ ۲) ټینګول؛ ۳) ګورول، ګنول، ګنګور کول.

**تتوه** (tatáwa) ښځ. م. (ج. تتوې) ګـوګشتو، خره کټمیره، پاختکه، پختکه.

**تته** (tatá) ص.نب (ج. تتې) ۱) تړتړی، تتله، توری؛ ۲) ښځ.م. پیکه، کمه رڼا؛ ۳) د ماشومـانو یو ډول لوبه ده. ۵) و.ګ. تته ۱).

**تتې** (taté) ص. ښځ.م. ۱) ګـڼـه، جمع، مجـموعـه؛ ۲) کمزوري (سـترګې)؛ ۳) ښـځ.م. پېنډه، کټ کبډي، کبډي، یو ډول لوبه ده.

**تتی** (tatáy) ښځ.م ۱) د اوښ سینه؛ ۲) دلرګي لویه کاسه؛ ۳) په غره کې داوبو ګړی؛ ٤) ټتر، سینه؛

**تتبدل** (tatedál) مـص.ل. ۱) رڼا کـمېدل، باتی کمېدل؛ ۲) ژبه بندېدل؛ ۳) خفه کېدل؛ ٤) د مخ رنګ خـړ ېدل؛ ۵) رنګ کـمېدل؛ ٦) مت.ل. راټولېدل؛ ۷) ګڼه ګونه جوړېدل؛ ۸) ټینګېدل.

**تثلیث** (taslī́s) نر.م. په مسیحیت کې د درو اقنومو (اب، ابن، روح القدوس) پر وجود عقیده.

**تجار** (t(u,i)jā́r) نر.م. سوداګر، تجارت کوونکي.

**تجارت** (t(u,i)jārát) نر.م. سوداګري، د سوداګرۍ کار وبار، د سوداګرۍ چارې.

**تجارتخی** (tujāratjáy) نـر.م. پلـورنځی، مغازه، تجارتخانه، د تجارتي چارو دفتر.

**تجانس** (tajānús) نـر.م. یو شـانته والی، ورته والی، یورنګي، همجنستوب، له یوه جنسه.

**تجاوز** (tajā́w(a,ú)z) نـر.م. (ج. تجـاوزونه) له حده وتل، تېری، زیاتی، له حد نه اوښتنه.

**تجاوزکوونکی** (tajā́w(a,u)zkawū́nkay) فا. نر.م. تېری کوونکی، زیاتی کـوونکی، له خپله بریده اوښتونکی یا وتونکی.

**تجاهل** (tajāhól) نـر.م. ځان ناخبره اچولی، ځان ناګاره کونه، ناجانی، ځان په ناپوهۍ اچونه.

**تجاهل عارف** (tajāholsāríf) بد. داسې صنعت دی چې شاعر یو څـرګـند شی مجهول ګڼي او د کوم نزاکت لپاره خپل ځان ناګاروي.

**تجربوي** (tajr(i,u)bawī́) ص.نب. ازمـایښتي، ازمېښتي، امتحاني، د تجربې، د ازمایښت.

**تجربه** (tajr(i,u)bá) ښځ.م. (ج. تجربې، تجارب) ۱) ازمایښت، ازمـوینه؛ ۲) دلـیل، ثبوت؛

۳) د یوې حادثې ساینسي تکرار؛ ٤) پوهه.

تجربه کار (tajrubakā́r) ص. نر.م. پوخ، د تجربې خاوند، ازمایل شوی، له یلې وتلی، ازمېښتکار.

تجرید (tajrī́d) نـر.م. ۱) یوازې کـونه، بېلونه، گوښې کونه؛ ۲) روح له مادي علایقو او اړیکو نه پاک ساتل.

تجزي (tajazī́) ښځ.م. فق. په شـرعي احکامو کې یو ډول اجتهاد دی.

تجزیه (tajzīyá) ښځ.م. (ج. تجزیې) بېلونه، جلا کونه، برخې برخې کونه، په اجزاوو سره علیحده کونه.

تجسس (tajasús) نـر.م. لټونه، لټهون، پلټنه، تلاش، تحقیق، څرک ایستنه.

تجسم (tajasúm) نر.م ۱) څرگندېدنه، جوتېدنه؛ ۲) مجسم کېدنه، پنډېدنه.

تجگي (tajgī́) نـر.ج. دوېجـن اوره، هغه اوره چې زاړه شوي او دوړ یې کړې وي.

تجلا (tajalā́) ښځ.م (ج. تجلاوې) رڼا، نور، تجلی، ځلا، جلوه.

تجلي (tajlī́) ښځ.م. کوتونه ویستنه (د څرمنې)، د څرمنې گونجې ایستنه.

تجمل (tajamúl) نر.م. ۱) ښکلی کـېدنه، اراسته کېدنه، ځان سینگارونه؛ ۲) ښکلا.

تجنیس (tajnís) نـر.م. ۱) یوجنس کـېدل، یـو جنس کول؛ ۲) د بدیع پهعلم کې هغه صنعت دی چې ورته کلیمې په بېلو بېلـو ماناوو سره راوړل شي.

تجوري (tajurí) ښځ.م. (ج. تجـورۍ) تجـرۍ، تاجرۍ، سیف، گله.

تجوید (tajwī́d) نـر.م. ۱) ښکې کول، ښه کول، تحسین؛ ۲) غږپوهنه، فونولوجي.

تجویز (tajwī́z) نر.م. ۱) رأی، تدبیر؛ ۲) جایـز کول، رواگڼل؛ ۳) فیصله، پرېکړه؛ ٤) غـور، فکر؛ ٥) انتظام، بند وبست؛ ٦) جواز ورکول.

تجهیز (tajhī́z) نر.م. (ج. تجهیزونه، تجهیزات) ۱) تیارول، برابرول؛ ۲) مـړي د خښولو لپاره تیارول؛ ۳) د یوه لښکر د اړتیا ور شیان.

تجهیز و تکفین (tajhizotakfī́n) نر.م. د مړي د خښولو او د کفن ورکولو بند وبست.

تجیر (tajī́r) نر.م. ۱) لویه خیمه؛ ۲) هغه لویه پرده چې د کور په غولي کې وهل کېږي.

تچ[1] (tič) نـر.م. (ج. تچونه) تکی، تکه، تېکی، د توري یا چرې پوبښ.

تچ[2] (tač) نر.م. ۱) د پرېوتـو اواز، د لـوېدو اواز؛ ۲) ص. نر.م. تش، خالي.

تچه (jača) ښځ.م. (ج. تچې) کچې، چکـرې، چې چې، اچې، د وزې د شړلو اواز.

تحت الحمایه (tahtulhimāyá) ص.نر.ښځ.م. مستعمره، ناازاد، ترحمایت لاندې.

تحت اللفظ (tahtulláfz) ص.نر.م. ۱) تکي په تکي؛ ۲) تالماتې غزلې ویل.

تحریر (tahrī́r) نـر.م. ۱) لیکنه، لیک، خط؛ ۲) رسید، سند، قباله؛ ۳) عبارت، ژبه، سبک؛ ٤) ازادول؛ ٥) د غزلو پر وخت د اواز لوړدول.

تحریري (tahrirí) ص.نب. لیکلی، د لیکنې.

تحریف (tahrī́f) نر.م. اړونه، گـرځونه، بل شانته کونه، لاسوهنه.

تحریک (tahrī́k) نـر.م. ۱) المسون، پـارونه؛ ۲) حرکت ورکونه؛ ۳) هڅه، کوښښ.

تحریکول (tahrīkawā́l) مص.مت. لمسول، پارول.

تحریم (tahrī́m) نر.م. منع، ناجـایز، حـرامـونه، منعکسونه، روانه گڼنه.

تحسین (tahsīn) نر.م. شاباسی، اپرین، آفرین، ښه ویل، ستاینه، ښه ګڼنه.

تحسین نامه (tahsīnnāmá) ښځ.م. ستاینلیک، د چا د ښو چارو ستاینه.

تحصیل (tahsīl) نر.م. ۱) حاصلونه، لاس ته راوستنه؛ ۲) ټولونه؛ ۳) علم حاصلونه، زده کړه؛ ٤) د سیمې یوه وړه اداري ځانګه.

تحصیلدار (tahsīldā́r) ص.نر.م. حاصلوونکی، تحصیلوونکی، د سیمې د یوې وړې اداري ځانګې آمر.

تحصیلداري (tahsīldārí) ښځ.م. ۱) تحصیل، د سیمې یوه وړه اداري ځانګه د مامورینو ځای؛ ۲) د تحصیلولو دنده.

تحصیلول (tahsīlawә́l) مص.مت. حاصلول، لاس ته راوستل، ترلاسه کول، راټولول.

تحفظ (tahfúz) نر.م. ساتنه، ژغورنه، خوندیینه، حفاظت.

تحفه (tuhfá) ښځ.م. (ج. تحفې) ۱) سوغات، بخشش، ډالۍ؛ ۲) عجیب یا نایاب شیز، نااشنا شی.

تحقیر (tahqī́r) نر.م. سپکاوی، سپکوالی، بې عزتي، سپک ګڼنه، کوچنی کوونه.

تحقیرول (tahqīrawә́l) مص. مت. سپکول، ټیټول، دګل، رټل، ذلیلول، کوچنی کول.

تحقیق (tahqī́q) نر.م. (ج. تحقیقونه، تحقیقات) ۱) پلټنه، حقیقت معلومونه؛ ۲) څېړنه، ریسرچ، تتبع؛ ۳) رښتیا، حقیقت.

تحقیقي (tahqīqí) ص. نسب. ۱) د تحقیق، د څېړنې، د لټون؛ ۲) علمي (د څېړنې پر موازینو برابر).

تحکیم (tahkī́m) نر.م. ټینګونه، استوارونه.

تحلیف (tahlī́f) نر.م. قسم یا سوګند ورکونه.

تحلیل (tahlī́l) نر.م. (ج. تحلیلونه) ۱) حلول، ۲) تجزیه کول، ویلې کول، یوه موضوع په برخو او اجزاوو وېشنه او د دغو اجزاوو ترمنځ د اړیکو بیانونه.

تحمل (tahmṓl) نر.م. زغم، حوصله، صبر، سېل.

تحمیل (tahmī́l) نر.م. بارونه، د چا پر اوږه بار اېښودنه، پر چا باندې په زور د کار منښه.

تحمیلي (tahmīlí) ص.نب. په زور، جبري.

تحول (tahawṓl) نر.م. (ج. تحولات) اوښتون، بدلون، بېرته جوړېدنه، ځای پرځای کېدنه.

تحویل (tahwī́l) نر.م. ۱) سپارنه، حواله کونه، تسلیمونه؛ ۲) داخلېدنه، راتلنه.

تحویلخانه (tahwilxāná) ښځ.م. هغه خونه یا بل ځای چې شیان پکې ساتل کېږي.

تحویلدار (tahwildā́r) ص. نر. م. هغه څوک چې پیسې یا جنس ساتي.

تحیر (tahayū́r) نر.م. حیرانتیا، حیراني.

تخت (taxt) نر.م (ج. تختونه) ۱) د پاچا د ناستې مخصوص ځای؛ ۲) د ناوې ځانګړی جوړ شوی ځای؛ ۳) مسطح او اوار.

تخ تخ (taxtax) نر.م. ۱) تخنونه، ماشوم خندونه؛ ۲) د کوچنیانو یوه لوبه ده؛ ٤) د پسه یا وري د رابللو اواز.

تخت ناستی (taxtnā́stay) نوم پر تخت کېناسته، تخت کېناستنه.

تخته (taxtá) ښځ.م. (ج. تختې) ۱) دره، د لرګي پلنه ټوټه؛ ۲) هر پلن او اوار شي؛ ۳) ص. نب. د ک؛ ٤) کېمندلی، کېکاږلی؛ ٥) چاغ، مزی.

تخته څېر (taxtacér) نر.م. هغې کلکې وادۍ چې سري پرې ښوییږي.

**تختی** (taxtáy) نر.م. د خاورې لوښی یا ټبخی.

**تخڅ** (taxáʒ) ښځ.م. (ج. تخڅې) وګ. ترېخ.

**تخدير** (taxdír) نر.م. بېحسونه، سستونه؛ طب. انسعيزې، د اندام د بېحسۍ حالت.

**تخرګ** (taxə́rg) نر.م. ۱) ترخ، د ښېښيو او مټ تر منځ ځای؛ ۲) څنګ، خوا.

**تخرګی** (taxərgáy) نر.م. (ج. تخرګي) ترخګ، تخرګ، هغه درې ګوټيزه ټوټه چې د کميس د کلکوالي لپاره په تخرګ کې اچول کېږي.

**تخريب** (taxríb) نر.م. ورانونه، ورانی؛ زيان رسونه، مادي يا معنوي زيان رسونه.

**تخريبي** (taxribí) ص.نسب. د ورانۍ، د زيان، تاوان، تاواني.

**تخريش** (taxríš) نر.م. ۱) خارښت، بخارکول؛ ۲) ګروول کېدل، ګرېدنه؛ ۳) خپګان.

**تخصص** (taxasós) نر.م. ۱) مهارت، استازي، په يوه مسلک کې مهارت لرنه؛ ۲) خاصېدنه.

**تخصيص** (taxsís) نر.م. ځانګړونه، تعيين، ټاکنه، مختص کېدنه، اختصاص ورکونه، مختصونه.

**تخصيصول** (taxsisawál) مص.مت. ځانګړول، تعيينول، ټاکل، اختصاص ورکول، مختصول.

**تخفيف** (taxfíf) نر.م. ۱) کمونه، لږونه، راکښته کونه، ټيټونه؛ ۲) سپکونه؛ ۳) د يوې کلېمې د توريو د تشديد يا د يوه توري غورځول.

**تخلص** (taxalús) نر.م. لقب، لنډ نوم.

**تخلف** (taxalóf) نر.م. (ج. تخلفونه) ۱) ماتونه، تر پښو لاندې کونه؛ ۲) مخالفت کونه، بې لوظي کونه، سرغړونه.

**تخليص** (taxlís) نر.م. خالصول، ايله کول، ازادول، لنډول.

**تخليق** (taxlíq) نر.م. خلقول، پيدا کول، پنځونه، منځ ته راوستنه.

**تخليقي** (taxliqí) ص.نسب. ۱) د تخليق، د خلاقيت، د خلق کولو؛ ۲) هنري، ابتکاري.

**تخليه** (taxliyá) ښځ.م. (ج. تخليې) تشونه، خالي کول، تشېدل، تشېدنه.

**تخم**[1] (túxəm) نر.م. (ج. تخمونه) ۱) زړی، دانه، د حبوباتو دانې؛ ۲) اصل، نسل، [illegible]، نژاد، خته؛ ۳) هګۍ، ويه؛ ٤) سپرم؛ ٥) خوټې.

**تخم**[2] (taxám) نر.م. (ج. تخمونه) دخولې ځګ، د ديګ او کټوې ځګ.

**تخمار** (taxmā́r) نر.م. خارښت، تحور، تخرېدنه، تخېدنه، خارښتېدنه.

**تخمخ** (təxmáx) ص.نر.م. ۱) شرمنده، پښېمانه؛ ۲) ګډوډ، تيت، خوروور.

**تخمخ کول** (taxmaxkawál) مص.مت ۱) شرمنده کول، پښېمانول؛ ۲) ګډوډول، وېرول.

**تخمدان** (tuxəmdā́n) نر.م. ۱) د تيوورو ژويو د بدن هغه غړي چې نطفه پکې جوړېږي، زيلنځ، زهدان؛ ۲) د يو ګل هغه اصلي برخه چې په هغې کې تخمې راپيدا کېږي.

**تخمر** (taxamór) نر.م. خميرېدنه، رسېدنه.

**تخم ريز** (tuxəmréz) نر.م. د کرلو د ځمکې اندازه، د کرنې هغه ځمکه چې د تخم له مخې اندازه کېږي.

**تخمه** (toxmá) ښځ.م. (ج. تخمې) ۱) اصل، نژاد، نسل، ريښه؛ ۲) اغېږ، بدهضمي؛ ۳) چول، د سخور توپک د پټاکۍ د ايښودلو ځای.

**تخمي** (toxmí) ص.نب. ۱) د تخم، د تخم لپاره؛ ۲) هغه نر ښاروی چې د نسل اخستلو لپاره ساتل شوی وي.

**تخمیر** (taxmír) نر.م. خمیرول، د شرابو رسېدنه.

**تخمین** (taxmín) نر.م. اټکل، گومان، قیاس.

**تخمیناً** (taxminán) ق. اټکلي، تقریبي، تقریباً.

**تخنول** (taxnawə́l) مص. مت. ۱) تخول، تخنول؛ ۲) پارول، شوق ورو ستل، چمتو کول.

**تخنی** (taxnáy) نر.م. ۱) تخې، ختونه، خندونه؛ ۲) وېره، بېره.

**تخنی تخنی** (taxnáytaxnáy) ص.نر.م. ذره ذره، ریچې ریچې، زرې زرې، ټوټې ټوټې.

**تخنیک** (taxník) نر.م. تکنیک، ۱) تکنالوجي، فن، صنعت؛ ۲) حربي وسلې او وسایل.

**تخنیکي** (taxnikí) ص. نب. ۱) د صنعت، د فن، د تکنالوجۍ؛ ۲) ښځ.م. زره خولۍ، زره ټوپۍ.

**تخنک** (taxnák) نر.م. (ج. تخنکي) ډېره مینه، لېوالتیا، ډېر شوق، رغبت، خواهش، هوا.

**تخنکی** (taxnakáy) ص.نر.م. شوقي، شوقمن، لېوال، مایل.

**تخول** (taxawə́l) مص. مت. و گ. تخنول.

**تخونی** (taxúnay) نر.م. (ج. تخونې) خوراکي شاروی، ډېر خوړی شاروی.

**تخه** (táxa) ښځ.م. (ج. تخې) ۱) ورانې پې، وران ورور، متر، کله جوش؛ ۲) د مار پوستکی؛ ۳) تخېدنه، تخنېدنه.

**تخی** (táxay) نر.م. (ج. تخي) تخور، خارښت، تخونه، ختونه، تخنونه.

**تخېدل** (taxedə́l) مص.ل. و گ. تخنېدل.

**تخیل** (taxayól) نر.م. انگېرل، تصور، خیال، گومان، په خیال کې راگرځول.

**تداخل** (tadāxól) نر.م. ۱) یو په بله ننوتل، ۲) من. د دوو قضیو هغه حالت چې په کیفیت کې سره گډې او په کمیت کې سره بېلې وي.

**تدارک** (tadārók) نر.م. ۱) تیارونه، آماده کونه؛ ۲) تدبیر، بندوبست؛ ۳) پته لگونه، درک کونه.

**تداعي** (tadāʕí) ښځ.م. (ج. تداعی) ۱) یو او بل سره راغونډېدل؛ ۲) دعوا سره کول؛ ۳) د یوه شي په لیدو سره د بل شي ذهني راتگ.

**تدافع** (tadāfóʕ) ښځ.م. (ج. تدافعې) مخنیوی کول، دفاع، مخه نیونه، د قوت شنډونه.

**تدافعي** (tadāfuʕí) ص.نب. دفاعي، د مخنیوي.

**تداوي** (tadāwí) ښځ.م. علاج، درملنه، دوايي کول، علاج کول، درمل کول.

**تدبر** (tadabúr) نر.م. (ج. تدبرونه) سنجش، تدبیر کونه، فکر کونه، سنجونه.

**تدبیر** (tadbír) نر.م. (ج. تدبیرونه) غور، چاره سنجونه، سوچ، فکر، چاره، سنجش.

**تدخین** (tadxín) نر.م. لوگی کول، څکونه، دودونه.

**تدریجي** (tadrijí) ص.نب. درجه په درجه، پوړۍ پر پوړۍ، ورو ورو، وار په وار.

**تدریس** (tadrís) نر.م. ورزده کول، درس ورکول.

**تدریسول** (tadrisawə́l) مص.مت. تعلیم ورکول، سبق ورکول، ښوول، ورزده کول.

**تدریسي** (tadrisí) ص. نب. د تعلیم، د سبق.

**تدفین** (tadfín) نر.م. ښخونه، (د مړي) خاورو ته سپارنه.

**تدقیق** (tadqíq) نر.م. (ج. تدقیقونه) غور کونه، دقت کونه، غور.

**تدلیس** (tadlís) نر.م. د کوم شي عیب پټول، د خپل ځان یا خپل څه شي عیب پټونه؛ ۲) تېر ایستنه، غولونه.

**تدویر** (tadwír) نر.م. ۱) دایرونه، منځ ته راوړنه، تاسیسونه؛ ۲) دوره ورکونه، چورلونه، جوړونه په حرکت راوستنه.

**تدوین** (tadwī́n) نر.م. ۱) راټولونه، مرتبونه؛ ۲) دیوان جوړونه، د اشعارو یا نورو موضوع ګانو راټولونه.

**تدوینول** (tadwinawə́l) مص. مث. تالیفول، مرتبول، لیکل، دیوان جوړول، ترتیبول.

**تذبذب** (tazabzób) نر.م. زړه نازړه توب، تردد، دوه زړه توب، اریانتیا.

**تذخیر** (tazxī́r) نر.م. ذخیره کونه، زېرمونه، ټولونه.

**تذکار** (tazkā́r) نر.م. ذکر کول، یادونه، ذکر کونه، ذهن ته راوستل.

**تذکر** (tazakór) نر.م. ۱) ذکر کونه، وینه، یادونه؛ ۲) پند اخیستنه.

**تذکره** (tazkrá) ښځ.م. (ج. تذکرې) ۱) ذکر، بیان، یادښت؛ ۲) ژوند پېښې، هغه کتاب چې د شاعرانو یا پوهانو ژوند پېښې پکې لیکل شوې وي؛ ۳) د سجل پاڼه، د تابعیت پاڼه.

**تذکیر** (tazkī́r) نر.م. ۱) یاد ته راوړل؛ ۲) پند ورکول؛ ۳) نرینه، نارینتوب؛ ٤) هغه کلیمه چې د نارینه نوم نښه یې په پای کې راغلې وي.

**تذلیل** (tazlī́l) نر.م. ۱) بې عزته کول، سپکول، سپکونه، ټیټونه، ذلیلونه.

**تذهیب** (tazhī́b) نر.م. طلاکاري، په تزئیني کتابونو او پاڼو کې په زرو سره تزئین.

**تر** (tar) اد. د ربط وییکی؛ ۱) د پوري وستربل سربل د «له» سربل وستربل، د دوه شیزونو پرتلیز وییکی، د یوشه پای ښکاره کوي – له ... تر ...؛ ۲) نسبت، په پرتله.

**ترا** (tarā́) ق. غوندې، شان، په شان، مثل، لکه، دول، په څېر. د پارسي د ترا او ترین معادل.

**ترابخي** (trābxī́) ښځ.م. ترپکې، خېزکې، ټوپونه.

**تراپ** (trāp) نر.م. ترپ، خېز، ناڅاپه منډه کول.

**تراپي** (trāpī́) ښځ.م. Therapy د ناروغۍ علاج.

**تراټ** (trāṭ) نر.م. ۱) تېزه او په تلوار منډه، په بېړه، ۲) متروکه، قمچینه؛ ۳) دُره بازي؛ ٤) د یوه بوټي نوم دی چې په ګل یې کالي مینځي او په بوټي یې څرمنو ته آش ورکوي.

**تراټه** (trā́ṭa) ښځ.م. ۱) د وریښمو په ګل کاري کې یو ډول نقش دی؛ ۲) د څادر یا برستنې پیڅه یا څنډه؛ ۳) تسمه؛ ٤) پیوند؛ ٥) پرېړې، ترټه، د غلې د ساتلو لپاره له پوزي څخه جوړ شوی ځای؛ ۲) ترکندو غټ ځای.

**تراټی** (trāṭáy) ص.نر.م. چغزي، کاغذي، هغه څه یا بادام چې په اسانۍ سره ماتیږي.

**تراجیدي** (trājidī́) ښځ.م. و.ګ. تراجیډي.

**تراخ** (trāx) نر.م. ترک، ټس، ترق، له لوړ ځای څخه د یو شي د راغورځېدو اواز.

**تراخم** (tarāxúm) نر.م. کوکرې، تراکوم، تراکوما، د سترګو یو راز ناروغي ده.

**تراده** (trā́da) ښځ.م. چړی، رښکې، لونه څیره یا رنجه؛ ۲) تسمه، پراده؛ ۳) شبقه.

**ترار** (trār) ص.نر.م. ناکاره، په ترهه، تلولی.

**تراره**(۱) (trā́ra) ښځ.م. وېره، بېره، دار، ترهه.

**تراره**(۲) (tarārá) ښځ.م. ۱) وېره، بېره، دار، ترهه؛ ۲) ناکراري.

**تراړ** (trāṛ) نر.م. درې کلن جونګی، د اوښ درې کلن بچی.

**تراړه** (trā́ṛa) ښځ.م. (ج. ترارې) ۱) دغره لمن؛ ۲) کانیزه ځمکه؛ ۳) اغزنه جاړه؛ ٤) الوی، لوی، داده؛ ۲) د چنو ګونګړې یا هغه غنم چې نوي رسېدلي وي او په اور نیم خام پاخه شي

**ترازو** (tarāzū́) ښځ.م. و.ګ. تله.

**ترازه**[1] (tarāzá) ښځ. م (ج. ترازې) تیلم، قلې، دره، چنډه (د هندوانې یا ختکی).

**ترازه**[2] (trāza) ښځ.م. (ترازې) د اوبو لوی بند، د اوبو د زیرمې لویه کاسه.

**تراژیدي** (trāžidí) نب. وګ. تراجیدي.

**تراس** (trās) نر.م ۱) د کور مسطح بام؛ ۲) د کورونو هغه کتار چې مخ پر لوړه پروت وي.

**تراش** (tarāš) نر.م. ۱) تورونه، تراشنه؛ ۲) طرز، طریقه؛ ۳) ایجاد؛ ٤) جوړښت؛ سینګار.

**تراشل** (trāšəl) مص.مت. تورل.

**تراشونی** (trāšūnay) فا.نر.م. تورونکی، تراشونکی؛ ۲) نر.م. د تورلو آله.

**تراشی** (tarāšáy) نر.م (ج. تراشي) پخسه تراش، هغه آله چې پرې د دیوال د پخسې خته توري.

**تراغ** (tarāq) نر.م. (ج. تراغي) منجیله، حلقه، تاو راتاو شوی، ګونځې ګونځې شوی.

**تراک** (trāk) نر.م. (ج. تراکونه) ۱) درز، چاود؛ ۲) د توپک د منګ رخې؛ ۳) د څه شیز (شي) د راغورځېدو اواز.

**تراکم** (tarākóm) نر.م. سره راټولېدنه، راغونډېدنه، تولېدنه، یو ځای کېدنه، ګڼه ګونه.

**ترامبیه** (trāmbya) ښځ.م. پوړی، زینه، پاتکی.

**ترامه** (trāmá) ښځ. م. (ج. ترامې) ۱) نری اوسپنیزه تخته یا څادر؛ ۲) د ګروپ پوښ، د ګروپ شیټ.

**ترانتی** (trānátay) ص. نر.م. پراخ، وسیع، پلن.

**ترانځه** (trānjá) ښځ.م. سرېښناکه مایع.

**ترانه** (tarāná) ښځ.م. (ج. ترانې) هغه حماسي سندره چې د ځوانانو له خوا په ګډه ویل کېږي.

**تراڼ** (trāṇ) نر.م. پیل، شروع، برید. لاس پورې کونه، په کار لاس پورې کونه.

**ترانه** (trāṇa) ښځ.م. (ج. ترانې) ۱) غوسه، قهر، کاوړ؛ ۲) کینه، سرتنبګي؛ ۳) شر، فساد.

**تراو**[1] (trāw) نر.م. تراه، بهره، دار، ترهه.

**تراو**[2] (tirāw) نر.م. یوه پیمانه، داوړې د پیمانې برخه، د پیمانې لوښی.

**تراوسه** (tərósa) ق. تردې وخته، تردې دمه، تردې ګړۍ، تردې شېبې.

**تراونګی** (trāwə́ngay) نر.م. ترومی، تروړمی، بې سپوږمۍ شپه.

**تراوه** (tarāwá) ښځ.م. (ج. تراوې) بوره، کلیچ، بورۍ، ځولۍ، د خاورو وړلو بوری.

**تراه** (trāh) ښځ.م. وېره، دار، ترهه، سترګه ترې کېدنه.

**ترایي** (turāyí) ښځ.م. وګ. توری.

**ترب** (turb) نر.م. د تاش د لوبې یو ډول.

**ترباری** (tarbāráy) نر.م. (ج. ترباري) د کوټې په کونج کې د کالو ځړولو لپاره نهغ ډرول شوې لرګي.

**تربت**[1] (tarbát) ص.نر.م. ۱) خفه شوی، غرغره شوی؛ ۲) پرېشانه، تنګ؛ ۳) د باد بندېز، د هوا بندېز، دوپه هوا.

**تربت**[2] (torbát) نر.م. خاوره، قبر، مزار، کور.

**تربتول** (tarbatawə́l) مص. مت. ۱) خفه کول، زندی کول؛ ۲) تنګول؛ ۳) پرېشانول؛ ٤) بندول.

**تربتېدل** (tarbatedə́l) مص. ل. ۱) خفه کېدل، غرغره کېدل؛ ۲) پرېشانه کېدل؛ ۳) تنګېدل.

**تربخته** (tarbúxta) ص. ښځ.م. (ج. تربختې) بدبویه، خسا، تربخه- تربخته هوا.

**تربختي** (tarbuxtí) ښځ.م. (ج. تربختۍ) تربخته هوا، بدبویه هوا، خسا هوا.

**تربګني** (trabganí) ښځ.م. ۱) تربورګلوي، تربګنت، تربوروالی، تربورتوب؛ ۲) دښمني؛ ۳) حسد، کینه، بغض.

**تربل** (tarbál) نر.م. (ج. تربلي) ۱) هغه دوډۍ چې په زومنه یا ښوروا کې میده او له پاسه یې سره کړې غوړي پر اچول شوي وي؛ ۲) د خوراک غټ ښانک؛ ۲) د سپوږمۍ شپول.

**تربوچه** (tarbūčá) ښځ.م. تربچه، سرې مولۍ.

**تربور** (tarbūr) نر.م. (ج. تربرونه، تربوران) ۱) د تره زوی، د کاکا زوی؛ ۲) دښمن.

**تربوزک** (tarbūzák) نر.م. و.ګ. تیمبوزک.

**تربوزک وهل** (tarbūzakwahál) مص. مت. مول وهل، ټامبزک وهل، تمبزک وهل.

**تربوزه** (tarbūza) ښځ.م. (ج. تربوزې) تامبوزې، تربزکه، الیچک، د ټیکري هغه پیشه چې په وربښمو جوړه شوې وي.

**تربیت** (tarbiyát) نر.م. تربیه، روزنه، پالنه، پرورش.

**تربیع** (tarbís) ښځ.م. (ج. ترابیع) څلوربرخې کول، څلورونډۍ کول، څلورمه، ربعه.

**تربیه** (tarbiyá) ښځ.م. (ج. تربیې) روزنه، پالنه، د ادب او اخلاقو د ښوونې چاره. و.ګ. تربیت.

**ترپ**(۱) (trap) نر.م. (ج. ترپونه) ۱) توپ، خېز، ترپه؛ ۲) ځغل، ځغاسته، منډه؛ ۳) ترک.

**ترپ**(۲) (tarp) نر.م. ۱) یو ډول سورلي؛ ۲) یو ډول وانښه دي؛ ۳) مولۍ، ملی.

**ترپا** (trapā) ښځ.م. (ج. ترپاوې) ۱) ترپ ترپ، ټوپونه، ترینجکې، منډې ترړې؛ ۲) د پښو ترپا.

**ترپاڼ** (tarpāṇ) نر.م. بارتنګ، زوف.

**ترپال** (tarpāl) نر.م. (ج. ترپالونه) ټاټ، پنډه او پېره توته یا پلاستیک.

**ترپایه** (tarpāya) ق. تراخیره، ترانجامه، له سره ترپښو، له سره ترپایه، سرترپایه.

**ترپچه** (trapčá) ښځ.م. و.ګ. چچه، تربوچه.

**ترپړ** (tarpáṛ) نر.م. ۱) بېکاره، خیرنه، خچنه، زړه جامه؛ ۲) خیرنه ږېرستن؛ ۳) ص.نر.م. نیمګړی ۴) الټ، تنبل (سړی)؛ ۲) خیرن (سړی).

**ترپړه** (trapaṛa) ښځ.م. (ج. ترپړې) پربدن د خیرو داغونه، د خیرو داغونه.

**ترپک** (turpák) نر.م. د پایکو د تیر په دواړو سرونو کې هغه برخه چې پر بالښتکونو ایښودل کېږي.

**ترپکې** (trapaké) ښځ.م. ټوپونه، غورځانګې، خېزونه او ټوپونه، ترینجکې درینجکې.

**ترپکي** (tarpakí) ښځ.م. د ګرندي اوښ په څېر بې ترتیبه منډې وهنه.

**ترپکې وهل** (trapakewahál) مص. مت. ټوپونه وهل، منډې وهل، خېزونه وهل.

**ترپل**(۱) (tarpál) نر.م. د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**ترپل**(۲) (trapál) مص. مت. ۱) بې ډوله خاوره اوارول؛ ۲) یو د بل له پاسه د شیانو بې ترتیبه ایښوول؛ ۳) دربل، پرپرنده او اوبره خاوره ټوپونه وهل، په ټوپونو ځمکه پخول یا اوارول؛ ۲) بې ترتیبه ځغلېدل یا ټوپونه وهل.

**ترپلل** (traplál) مص. مت. تېښته کول، په تېښتو ځغلېدل، له جنګ نه په وارخطایۍ تښتېدل.

**ترپلنه** (traplóna) ښځ.م. (ج. ترپلنې) ترپلنګ، له جګړې نه په تېښته ځان خلاصونه.

**ترپلودل** (traplodál) مص. ل. تېز تېز ځغلېدل، تېزه منډه وهل، چابکه تېښته کول.

**ترپلوکی** (traplūkay) نر.م (ج. ترپلوکي) ۱) تور ملی، دله خفک، یو ډول خېړرنګې ځناور دی؛

۲) يو ډول نارو غي.

**ترپله**[۱] (trápla) ښځ.م (ج. ترپلې) ترپکې، ټوپ، ټوپونه، خېزکې.

**ترپله**[۲] (triplá) ښځ.م. د هرېړې، بربړې او املې ګډ ترکیب.

**ترپلی** (trapláy) مف. نر.م. (ج. ترپلي) ۱) هغه څه چې بې ترتيبه يا ناوړلي اېښودل شوی وي ۲) غځلېدلی، تنبتېدلی.

**ترپندک** (trapandák) ص. نر.م. (ج. ترپندکي) هغه ځناور چې بې ډوله ټګ کوي.

**ترپندی** (trapandáy) نر.م. (ج. ترپندي) سنګپر، هغه تيږې چې په اوبو کې د تېرېدو لپاره اېښودل شوي وي.

**ترپنه** (trapána) ښځ.م. ۱) ټوپ وهنه، خېز وهنه؛ ۲) بې ترتيبه کېدنه.

**ترپول** (trapawә́l) مص. مت. ۱) غځلول، تنبتول، منډه ورکول؛ ۲) بې ترتيبه وهل؛ ۳) بې ترتيبه اړارول؛ ٤) بې ترتيبه منډل يا کېمنډل.

**ترپه** (trapá) ښځ.م. (ج. ترپې) ۱) ټوپ، خېز، ترپکې؛ ۲) ګډا، نڅا، ړدانګې.

**ترپهار** (trapahā́r) نر.م. ۱) ترپها، د پښو ښکالو يا ورو اواز؛ ۲) دربها، د څه شيز د ټکولو اواز.

**ترپی** (trapáy) نر.م. ۱) ترپهار، ترپهار؛ ۲) هغه آس چې خپله پښه په زوره پر ځمکه ټکوي.

**ترپېدل** (trapedә́l) مص. ل. ترپېدل، څرپېدل، ټوپونه وهل، په ټوپو کېدل، د رينجکې وهل.

**ترت**[۱] (trat) نر.م. ترټ، متروکه، قمچينه.

**ترت**[۲] (turt) ص. نر.م. ۱) چابک، تېز، ګړندی، تکړه؛ ۲) نيغ، سم، پاک، سپين.

**ترتاب** (tartā́b) نر.م. ارمان، افسوس، حسرت، غم، سېګاڼ، ناري سورې، کوکې.

**ترتر** (tartar) نر.م. د اوښکو توېېدلو صفت، دردر.

**ترتره** (tartará) ښځ.م. (ج. ترترې) چنچنه، چرچرا، کوتړواله، يو ډول سپېره مرغی.

**ترتړلی** (tartaṛláy) ښځ.م. يو ډول مرغی.

**ترتړی** (tartaṛáy) ص. نر.م. تتله، نيم ژبی.

**ترتله** (taṛtála) ق. تل، هميشه، د تل لپاره.

**ترتناو** (tartanā́w) نر.م. جر. زاکبن، زابر.

**ترتی** (tartáy) ښځ.م. زړه پرده، زوړ څادر، د کېږدۍ سوري او زړه پرده.

**ترتيب** (tartíb) نر.م (ج. ترتيبونه) تنظيم، اوډون، اوډنګ، سمبالښت، برابري.

**ترتيبول** (tartibawә́l) مص. مت. تنظيمول، سمبالول، برابرول، ثابتول، استوارول.

**ترتيزک** (taratezák) نر.م. يو ډول سابه دي.

**ترتيل** (tartíl) نر.م. خبره په بې تکلفه او منظمه توګه بيانول، قرآن کريم په سمه توګه او ښه وزم سره تلاوتول.

**ترټ** (traṭ) نر.م. وګ. ترت[۱].

**ترټل** (traṭә́l) مص. مت. رټل، د ګل، دسل، ټګل، شړل، توبيخول، سپکول.

**ترټه** (traṭá) ښځ.م. (ج. ترټې) ۱) وګ. تراټ؛ ۲) لوی کندو، د غلې ساتلو لوی لوښی.

**ترجمان** (tarjomā́n) نر.م. ژباړونکی، ژباړن.

**ترجمه** (tarjomá) ښځ.م. (ج. ترجمې) ۱) ژباړه، ژباړنه؛ ۲) د چا د کړو وړو، اخلاقو او نسب ذکرونه.

**ترجه** (tarjá) ښځ.م. د ښاروېو د وښو يو ډول بوټی.

**ترجيح** (tarjíh) ښځ.م. غوره والی، وړاندې والی، ښه ګڼنه، غوره ګڼنه، باندې والی.

**ترجيع** (tarjíʔ) ښځ.م. راګرځونه، رجعت ورکونه، راستنونه، بېرته اخيستنه، تکرارونه.

**ترجيع بند** (tarjiʔbánd) نر.م. داسې شعر چې دغزل په ډول پنځه،اووه، يا نهه بيته وويل شي اوله هر بند وروسته د لومړي بند د كسر قافيې ته رجوع وشي.

**ترچ** (trač) نر.م. ترنج، پرنج، پرچ، ترنجى، پرنجى، انړى، پرچى، پرش، پرشى.

**ترچل** (tračə́l) مص. مت. ترچ وهل، انړى كول، انتروشى كول، پرنجى يا پرشى كول.

**ترچنده** (tračánda) ص. نب. ترخنده، په ترخ، ترخنګ، څنګځن، رېونده، رېبنده.

**ترچنه** (tračána) ښځ.م. (ج. ترچنې) انتروشى كونه، پرنجى كونه، انړى كونه، پرنجېدنه.

**ترچه** (tračá) نر.م. ترچهار، پرچهار، د انتروشى، پرنجى او انړي اواز.

**ترچى** (tračáy) نر.م. ١) پرچى، ترنجى، پرنجى؛ ٢) دپرنجي او انړي پر له پسې اوازونه.

**ترچېدل** (tračedə́l) مص. ل. پرچېدل، ترنجېدل، پرنجېدل، انړېدل، انتوسېدل، انتروشېدل.

**ترڅ** (trac) اد. ١) منځ، موقع، ترخ، اثنا؛ ٢) نر.م. ترڅنګ، څنګځن؛ ٢) سخته خبره؛ ٣) نارامي.

**ترڅو** (tarcó) قيد ١) تركله، تر كومه، تر هغو ترڅه وخته، تر كومه وخته؛ ٢) تر كومې اندازې.

**ترحم** (tarahóm) نر.م. زړه سوى، رحم او زړه سوى كونه، رحم لرنه.

**ترحيم** (tarhím) نر.م ١) مهرباني كول؛ ٢) دعفوې غوښتنه؛ ٣) مړي ته دعا كونه او درود وينه.

**ترخ** (trax) نر.م. ١) وګ. تخرګ؛ ٢) دانه، دهنه، درخ؛ ٢) داويو سر، سرچينه.

**ترخان** (tarxā́n) نر.م. هغه سړى چې له قلنګ او ماليې څخه معاف وي؛ ٢) د لرګي چېنجي؛ ٣) يو لقب چې پخوا به د پاچاهانو له خوا چا ته وركول كېده او له باج وركولو څخه معاف او دربار ته به يې تګ ازاد و.

**ترخځ** (tarxə́ǰ) ښځ.م. ترخځه، ترخځ لرونكى رخت، هغه توكر چې دكميس په تخرګ كې اچول كېږي.

**ترخسول** (traxsawə́l) مص. مت. څيرې كول، بڅه كول، نوى توكر څيرول.

**ترخسېدل** (traxsedə́l) ښځ.م. ١) څيرېدل، شلېدل ٢) چاودنه، چاودېدل، درې درې كېدل.

**ترخوبه** (tarxobá) ښځ.م. (ج. ترخوبې) ترخې اوبه، هغه ځاى چې اوبه يې ترخې وي.

**ترخوبى** (tarxobáy) نر.م. ١) د ترخو اوبو ډنډ، د ترخو اوبو تالاو، د مالګينو اوبو تالاو.

**ترخه** (tárxa) ښځ.م ١) چاود، درز، سورى، چاودون؛ ٢) يو ترېخ بوټى دى چې د نس دچينجو پرضد استعمالوي؛ ٣) ص. نر. دترېخ جمع؛ ٤) نر.م. د ډېګ مساله؛ ٢) غيرت، ننګ..

**ترخه توري** (tərxatoráy) ښځ.م. كربله، د توري په څېر يو ډول ترخه سابه دي.

**ترخه غوټه** (tərxaǧū́ṭa) ښځ.م. پياز، كك.

**ترخه ككوړه** (tərxakakúṛa) ښځ.م. مرغونى، منغونى، يو ساراني بوټى دى چې د ستمبول يا الوچې په اندازه زهرناكې دانې كوي.

**ترخه منه** (tərxamaná) ښځ.م. (ج. ترخې منې) مره غونى، منه غونى، حنظل.

**ترخي** (tarxí) ښځ.م. ١) بابونه، چارګلي، تويې ګل، يو ډول بوټى دى؛ ٢) سخت ژمى.

**ترخې اوبه** (tərxeobá) ښځ.م. سمندر، بحر، ترېخ درياب، هغه بحر چې اوبه يې ترخې وي.

**ترخي ترخي** (tarxítarxí) ص.نب. چاود چاود، درز درز، پرک پرک، تركېدلى.

**ترخېدل** (tarxedə́l) مص.ل. تريخېدل، تريخ کېدل، خوند بدلېدل.

**ترخيص** (tarxís) نر.م. رخصت ورکونه، اجازه ورکونه، د عسکري خدمت د پای سند.

**تردد** (taradód) نر.م. ۱) دوه زړه توب، زړه نازړه توب، ۲) تګ راتګ، ګڼه ګونه؛ ۳) کوښښ، زيار؛ ٤) د اسهال ناروغي.

**ترديد** (tardíd) نر.م. ۱) ردونه، نه منه، رد؛ ۲) دروغ بلل، درواغ ګڼنه.

**ترديدول** (tardidawə́l) مص. مت. ۱) ردول، نه منل، ردول؛ ۲) دروغ بلل، دروغ ګڼل.

**ترديف** (tardíf) نر.م. ۱) رديفونه، په رديف کې راوړنه، روڼونه، پېينه، اوډل، پېيل.

**تړه** (taṛá) ښځ.م. (ج. تړې) ۱) کبل، کبله، بروه ۲) محفل، منډه تړه؛ ۳) تکليف، ستونزه، رېړ؛ ٤) نرې باران.

**تړي** (traṛí) نر.ج. نرۍ وريځ.

**تړۍ** (taṛáy) ښځ.م. ډيبک، يو ډول مرغۍ ده چې برګ او يا خړ رنګ لري.

**تړېوهل** (taṛewahə́l) مص. مت. ۱) منډې وهل، ځغاستل؛ ۲) کوښښ او هڅه کول.

**ترزنی** (tarzanáy) ص.نر.م. (ج. ترزني) ۱) ترند، ترېدلی، ناروږدې شاروی؛ ۲) نابلده انسان؛ ۳) وارخطا، بې ثباته؛ ٤) بې پروا، بېزار.

**ترږمۍ** (taraẓmə́y) ښځ.م. ج. وګ. تروږمی.

**ترس**[1] (tras) نر.م. ۱) وګ. ترخ[1]؛ ۲) کوږ، يوې خواته کوږ، يو بغله.

**ترس**[2] (tars) نر.م. ۱) وېره، ډار؛ ۲) مهرباني، زړه سوی، خواخوږی.

**ترسا** (tarsā́) نر.م (ج. ترسايان) عيسوي، مسيحي، نصراني، راهب، عيسوي مذهبه.

**ترسب** (tarasób) نر.م. ۱) لاندې کېښناستل، تل ته کېناستنه؛ ۳) ددې عمليې پر اساس درو مادې سره بېلول.

**ترسره** (tərsára) ق. ۱) ترپايه، اجراء، پوره، پای ته، ترپای، انجام؛ ۲) ترسر پورې.

**ترسری**[1] (tarsaráy) نر.م. ۱) ترسېری، هغه پړی چې د شاروي له ورېوز نه تاوېږي؛ ۲) د حمل پر وخت د ښځو پر مخ داغونه.

**ترسري** (tarsarí) نر.ج. د ناروغۍ له امله د ناروغ په وجود او مخ کې راپيدا شوي داغونه.

**ترسکون** (traskū́n) ص.نر.م.ج. ۱) مزه ناک؛ ۲) تريو خونده، تروشګين؛ ۲) هغه خواړه چې خپل خوند واړوي.

**ترسکونول** (traskūnawə́l) مص.مت. ۱) خوند ور کول، خواړه خوندورول؛ ۲) خوند بدلول، بدخونده کېدل.

**ترسکونېدل** (traskunedə́l) مص. ل. ۱) خوند ورکېدل ۲) دخبرې خوند زياتېدل؛ ۳) بدخونده کېدل، بدمزې کېدل.

**ترسند** (tarsánd) ص. نر.م.ج. ۱) په ځنګ، په اړخ، پر ډډه، ځنګځن، ګوښه؛ ۲) کناره ګير؛ ۳) مرور او قهرېدلی، خپه.

**ترسندتوب** (tarsandtób) نر.م. ترسندوالی، په يو اړخ والی، په ډډه والی، پر ځنګ والی، ګوښه والی، ځنګځنتوب.

**ترسندول** (tarsandawə́l) مص.مت. ۱) په ځنګ کول، په ډډه کول، ځنګځنول؛ ۲) خلاصول، نجات ورکول.

**ترسندېدل** (tarsandedə́l) مص.مت. ۱) په ځنګ کېدل، په ډډه کېدل؛ ۲) خلاصېدل، ژغورل کېدل.

**ترسول** (tarsawə́l) مص. مت. ۱) بېرول، ډارول، وېرول؛ ۲) تېول، توسول.

**ترسېدل** (tarsedə́l) مص.ل. ۱) ډارېدل، وېرېدل؛ ۲) تېېدل، توسېدل، څه شيز ته زړه کېدل، هوی کېدل؛ ۳) رحم راتلل، زړه سول.

**ترسيم** (tarsím) نـر.م. ۱) پـر کـوم شـي بانـدې کرښه ايستل؛ ۲) انځورونه؛ ۳) نقشه ايستنه؛ ٤) ښېيه يا نښان اېښودنه.

**ترش** (turš) ص. نـر.م.ج. تروش، تسربـو، تـاک؛ ۲) بروس، خپه، خوابدی، عصبي.

**ترشا** (taršā́) ق. ۱) شـاتـه، وروسـتـه، ترځـټ، څـټ ته؛ ۲) په غياب کې، پسې شا.

**ترشح** (tarašóh) ښځ.م. (ج. تـرشحات) ۱) زېـم؛ ۲) څڅا، څڅوبې، وهار، څڅېدنه؛ ۳) پونه، لږ باران، پرڅک باران.

**ترشي** (turší) ښځ.م. ۱) اچـار؛ ۲) تروه شـيان، سرکه؛ ۳) تريووالی.

**ترښځ** (tarṣə́j) ښځ.م. تښځ، تېښه، د تـرکانې يوه آله.

**ترښځی** (tarṣəjay) نـر.م. يو ډول نقش چـې پر لستونو او گرېوان باندې کېږي.

**ترښکه** (traṣka) ښځ.م. (ج. ترښکې) نـرۍ لاره، د پليو لاره، پياده رو.

**ترصد** (tarsód) نر.م. څـارنه، لـيدنه، کتنه، څار، کوم څه ته کتنه او تر نظر لاندې لرنه.

**ترصدگاه** (tarsodgā́(h)) ښځ.م. ۱) د څـارنې، ليدنې او پلټنې ځای؛ ۲) و گ. رصدخانه.

**ترصيع** (tarsíʔ) نر.م. مـرصع کـول، جړاوول، پر کوم څه باندې جواهر اېښودل؛ بد. په دوو مسريو يا دوو جملو کې هموزنه او همسجع ويـېونه راوړل، لکه: چغار او پرهار.

**ترغا** (targā́) ښځ.م. تالان، لوټ، چور، چپاول.

**ترغاړه** (tərgā́ṛa) ق. ۱) ذمه، اناوټ، پر غاړه، کوم کار چا ته سپارل شوی؛ ۲) غاړه په غاړه، غاړه پر غاړه کېدنه.

**ترغاړی** (tərgā́ṛay) ص. نر.م. (ج. ترغاړي) تور غاړی (پسه)، تور غاړی.

**ترغاک** (targā́k) نر.م (ج. ترغاکونه) ۱) تلغاک، سخته سېلۍ او باران؛ ۲) شـاړه ځمکه، ميره؛ ۳) تالنده او برېښنا.

**ترغچي** (targáči) ښځ.م. د نجـونو يو ډول لـوبه ده.

**ترغلونی** (targalū́nay) نر.م. (ج. ترغلونيٌ) د ښځو او حيواناتو د تيو يو راز ناروغي ده.

**ترغوږی** (tərgwaẓay) ص.نـر.م. تورغـوږی، هغه پسه چې غوږونه يې تور وي.

**ترغونی** (targū́nay) ص. نر.م. ۱) و گ. لرغونی؛ ۲) ص. ښځ.م. د ماښام تياره، تياره.

**ترغه** (targá) ص.نب (ج. ترغې) ۱) تيت او پاشان، گډوډ؛ ۲) تالا، لوټ، نوستلی.

**ترغيب** (targíb) نر.م. ۱) رغبت، خوښه، تشويق، تمايل؛ ۲) لمسونه، پارونه، راضي کونه.

**ترغی ترغی** (targaytargáy) ص. نب. تيت و پرک، گډوډ، تالا ترغه، لت په لت، نوستلی.

**ترفيع** (tarfíʔ) ښځ.م. لوړونه، جگونه، پورته کونه، د يوې رتبې نه بلې رتبې ته لوړېدنه.

**ترقي** (taraqí) ښځ.م. (ج. تـرقۍ) پرمختـگ، وړاندې تگ، پراختيا، لوړوالی، انکشاف.

**ترک**(۱) (tarák) نـر.م. ۱) د مرغيو دنيولو يو ډول پرکه يا لومه؛ ۲) پرېښودنه، قضا کونه.

**ترک**(۲) (trak) نر.م. ۱) چاود، درز؛ ۲) د بوټي نبغ (سر) راوتنه؛ ٤) د شړۍ پر پلوونو انځور کول.

**ترکاري** (tarkā́ri) ښځ.م. (ج. ترکارۍ) سابه، شنه، شینکی.

**ترکاڼ** (trakā́ṇ) نر.م. نجار.

**ترکاڼک** (tarkāṇák) نر.م. تک تکنی، یو راز مرغی دی چې په مښوکه د ونو ډډو نه سوري کوي.

**ترکاڼي** (trakāṇí) ښځ.م. د ترکاڼ کسب، نجاري، هغه کسب چې ترکاڼ یې کوي.

**ترکش بندي** (terkašbandí) ښځ.م. سپاهي توب، عسکري، پوځي خدمت.

**ترکښ** (tarkáṣ) نر.م. ۱) د غشي د ساتلو او اېښودلو کڅوړه؛ ۲) وګ. تیرکښ.

**ترکله** (tarkə́la) ق. ترخو، ترکومه، ترخه وخته.

**ترکمه** (tarkə́ma) ق. ترخه وخته، ترکله، ترکومه.

**ترکڼ** (tarkáṇ) ښځ.م. ترکاڼ، درونګر، نجار.

**ترکڼکی** (tərkaṇakáy) نر.م. د مچوغنې ترسوونی او د مچلوغزې هغه نری سرچې د کانې ویشتلو پروخت کې ترس کوي.

**ترکوپره** (tərkopára) ق. ۱) تل، همېشه، دایم؛ ۲) زیات، کافي، ډېره زیاته اندازه.

**ترکودی** (tarkodáy) نر.م. (ج. ترکودي) نبات، شینکی، وړغورنېدونکی بوټی.

**ترکول**(۱) (tarkawə́l) مص. مت. ۱) غوښه په غوړیو کې سره کول؛ ۲) ځورول؛ ۳) پرېښودل، لاس اخیستل، وتل.

**ترکول**(۲) (trakawə́l) مص. مت. په لښتو سره وهل، په متروکه یا بل شي شړکول.

**ترکومه** (tərkū́ma) ق. ترکمه، ترکله، ترخو.

**ترکونی** (tarkū́nay) نر.م (ج. ترکوني) په ناروغۍ اخته شوی نبات.

**ترکه**(۱) (tarká) ښځ.م. (ج. ترکې) ۱) نانځکه، لښتکه، ناوکۍ؛ ۲) نوده، د ونې نازکه ښانګه یا تنکۍ لښته.

**ترکه**(۲) (taraká) ښځ.م. (ج. ترکې) د مېراثي مال وېش، ماترک، متروکات.

**ترکهار** (trakahā́r) نر.م. ج. ترکهاري، داس د پښو اواز؛ ۲) په لښته د وهلو اواز.

**ترکی** (trákay) نر.م. ۱) خراب او تروه خواره؛ ۲) غنم رتکی، سایرکه، یو ډول تور مرغی.

**ترکۍ** (tarakáy) ښځ.م. ۱) یو ډول شینکی دی؛ ۲) توري دانې دي چې له غنمو سره ګډې وي، سیاقان هم ورته وایي.

**ترکیب** (tarkíb) نر.م. ۱) ګډ، هغه څو شیزونه چې سره ګډ شوي وي. لکه لغوي، نحوي او...

**ترکیب بند** (tarkibbánd) نر.م. د بدیع په علم کې هغه ډول شعر چې تر هر بند وروسته یو یو بیت د بېلوالي په ډول راوړل شي او د کسر بندونه یې ځانله ځانله قافیې ولري.

**ترکیبي** (tarkibí) ص. نب. پېچلی، نغښتی، ترکیب شوی، ګډ شوی، د ترکیب.

**ترکېدل** (trakedə́l) مص. ل. ۱) تو کېدل، زرغونېدل ۲) په لښتو وهل کېدل؛ ۳) ځورېدل؛ ٤) تېښدل، توسېدل، کړېدل، د خوراک شیز تېزره کېدل.

**ترکېدونه** (tarkedū́na) تر امکانه، تروسې.

**ترکې ورکې** (tarkéwirké) ص. نب. شیندلی، خپور، خورور، ګډوډ.

**ترګ**(۱) (targ) نر.م. یو ډول ناروغي ده چې د حیواناتو له مټ څخه غوښه شړوي او زخم ترې جوړېږي.

**ترګ**(۲) (trag) نر.م. زنار، کاپر مزی، پېزوان، مهار، هغه مزی د حیواناتو په پوزه کې لوېږي.

**ترلټ** (tarláṭ) نر.م. (ج. ترلټونه) تـراټ، تاخت، منډه تړره، دړوه.

**ترلغونی** (tarlaǧúnay) نر.م. د ښاروږو يو ډول ناروغي چې له خولې يې لاړې بهيږي.

**ترله**[1] (tərlá) ښځ.م (ج. ترلې) ۱) د تره لور، دکاکا لور؛ ۲) ق. يو له بل سره، يو له بله، يو د بل نه.

**ترله انا** (tarlaaná) ښځ.م. (ج. ترلې اناوې) ترنه انا، د نيا نيا، د انا انا، لرې نيا، لرې انا.

**ترله وتل** (tarlawatə́l) مص. ل. ۱) خپه کېدل، په قهرېدل؛ ۲) مېلمه ته زيات خرڅ کول.

**ترله وتنه** (tarlawatə́na) ښځ.م. ۱) د ېـره خپه کېدنه؛ ۲) مېلمه ته زيات مصرف کونه.

**ترم** (torám) نر.م ۱) تروم، ښکـر، بګل، برغـو، په عسکري کې د عسکرو د خبرولو لپاره يوه آلـه؛ ۲) هېنده اس، هغه اس چې خسي نه وي.

**ترمايي** (tərmāyí) ص. نب. ۱) پسينه انار، انګـور او...؛ ۲) منګنی، هغه فصـل چې په منـي کې کـرل کېږي يا پخېږي؛ ۳) هغه مېـوه چې په مني کې پخېږي.

**ترمباز** (trəmbā́z) نـر.م. چـرمباز، نوی (Naway) نوي غويی، د غـوېـل هغه غـويی چې موږدي يا غوبلرګي ته نـهږدې ترل کېږي.

**ترمتی** (turumtáy) نر.م. يو ښکاري مرغه دی.

**ترمچي** (t(u)rumčí) فا .نر.م (ج. ترمچـيان) ترم وهونکی، تروم غږوونکی، تورنګچي.

**ترمخ** (tarmáx) ح. وړاندې، د مخـه، په مخـکې، لومړی، لومړنی، د تر شا ضد.

**ترمل** (tarmál) نـر.م. ۱) مابښـام؛ ۲) ص.نـر.م. حرارتي، د تودوخې، ګرم، تود.

**ترمله** (tramlá) ښځ.م. سرسـري، د وريجـو اوبـه (سرسر).

**ترمنه** (tramná) ښځ.م. ۱) نمجنه ځمکه، زېښناکه ځمکه؛ ۲) وتره، کرلو ته تياره ځمکه.

**ترموز** (tarmúz) نـر.م. ترماس، ترموس، يو ډول لوښی دی چې ســاړه او تاوده مـايعات تر يوه ټاکلي وخت پر خپل حال ساتي.

**ترمه** (tárma) ښځ.م. ۱) پسته خاوره، بوګه خاوره، پـرنده؛ ۲) زېښناکـه ځمکه، وتـره ځـمکه؛ ۳) درز ېدلې ځمکه، چاودلې ځمکه.

**ترمې** (tarmí) نر.م. د مېږو او وزو د شـړولـو يا راګرځولو لپاره د شپانه اواز؛ ۲) چاودکونه.

**ترمې ترمې** (tarmétarmé) ص. ښځ.م. ټـوټې ټوټې، رېږې رېږې، خورې ورې؛ ۲) چاود چاود.

**ترميره** (tarmirá) ښځ.م. يو ډول سابه دي، يو ډول شنېلې چې ګـردې ګـردې پاڼې لري او پر زخم ايښودل کېږي.

**ترميم** (tarmím) نر.م. اصلاح کونه، بيا سمونه، بيا جوړونه، بيا تيارونه، بيا رغاونه.

**ترميمول** (tarmimawə́l) مص.مت. اصلاح کـول، بيا سمول، جوړول، روغول، بيا تيارول.

**ترمينځ** (tarmyánʒ) ق. ۱) تـرمنځ، په منځ کې؛ ۲) پس، فاصله، وقفه.

**ترناو** (tarnā́w) نر.م (ج. ترناوونه) ۱) بيالـه، وياله ۲) ترې، ناوه، د لرګي هغه ناوه چې د وياله پر سر ايښودل شوې وي او له لښتې يې خوا ته اوبه پکې تېروي؛ ۳) د ځړندې ناوه؛ ؛ ۳) د دوو غرونو په منځ کې لاره.

**ترنج** (təránj) نر.م. (ج. ترنجونه) ۱) اغزی، ځوز، ازغـی، سـوی، هغـه ازغی چې ترنجبين ترې وباسي او اوبښـان يې هم خوري؛ ۲) د نارنج له کورنۍ، تر نارنج غټه مېوه ده، چکوتره هم ورته وايي.

**ترنجبین** (tranjabín) نر.م. ترنګبین، د څوږو ګوري، د خاص اغزي يو ډول خوږه شيره ده .

**ترنجوکی** (tranjū́kay) ښځ.م.ج. کلاوه، اټه، ترنجه، ترنجی، د ورېښمو یا سپینسیو مشوره.

**ترنجه** (tránja) ښځ.م. (ج. ترنجې) ۱) چور، چپېر، تېره ډېره ده چې ښپانه د ضرورت پر وخت مېږه په حلالوي؛ ۲) و.ګ. ترنجوکی.

**ترنځ** (tranǰ) ص.نر.م.ج. نري، ډنګر، خوار.

**ترنځتوب** (tranǰtób) نر.م. نریتوب، ډنګرتوب، خوارتوب، کمزورتیا، ترنځوالی، ترنځتیا، ترینګلتیا.

**ترنځکی** (tranǰakáy) نر.م. خوارکی، ډنګرکی، کمزورکی، د ترنځ تصغیر.

**ترنځلی** (tranǰə́lay) ص.نر.م. ۱) ترنګلی، بخیل، سوګت؛ ۲) کلک، سخت، کش شوی.

**ترنځوالی** (tranǰwā́lay) نر.م. (ج. ترنځوالي) خوار والی، ډنګروالی، نریوالی، کمزورتیا.

**ترنځول** (tranǰawə́l) مص.مت. خوارول، ډنګرول، کمزوری کول، م تپ تیپ کول.

**ترنځه** (tranǰā́) ښځ.م. ۱) د ترنځ مونث شکل؛ ۲) تیاره، تیاره والی، تیاره غوني.

**ترنځی** (tranǰáy) نر.م. (ج. ترنځي) ډنګر سړی، نری سړی، وچ کلک او خوراکی سړی.

**ترنځۍ** (tranǰáy) ښځ.م.ج. د اوبو داره، د اوبو تیرکه، د اوبو داری، د اوبو داړې.

**ترنځېدل** (tranjedə́l) مص.ل. خوارېدل، ډنګرېدل، کمزوری کېدل.

**ترند** (tar ánd) ص.نر.م.ج. توربېدونکی، ترهند، ترهېدونکی ښاروی، داربېدونکی، تورند.

**ترنداره** (trandā́ra) ښځ.م. (ج. ترندارې) د تره ښځه، تندار، د اکا ماندینه، ترینداره، کاني.

**ترندتوب** (tarandtób) نر.م. ترندتیا، توربېدنه، ترهېدنه، تریدنه، ترندوالی، وحشت، وېره.

**ترندې** (tránde) ښځ.ج. تریندې، د ترور جمع، تروریانې.

**ترنډ** (taránd̩) ص.نر.م. ۱) شورب آس، چاغ آس، غټ پټ اس؛ ۲) شورب، غټ.

**ترنډۍ** (tarandáy) ښځ.م. ۱) زیات خلک؛ ۲) د مېلمنو ګڼه ګونه؛ ۳) په زوره چیغې شور، ځور، چیغې ناري؛ ۴) ترنډه، ډله.

**ترنډې** (trandé) ښځ.ج. ۱) تسوپونه، درینجکې، مندې ترړې؛ ۲) تولې، جوپې.

**ترنزکه** (tranzə́ka) ښځ.م. بنتک، ګوترک، چنګتی، ترینګلی، کته پیش، موکی.

**ترنزۍ** (tranzə́y) ښځ.م.ج. د اوبو داره، د اوبو تندکه، د اوبو پیشکه.

**ترنک** (tarnák) نر.م ۱) قهر، غوسه، سوخت، تاو، خوشکه؛ ۲) زیاته اشتها، زیاته تلوسه.

**ترنکوڅه** (trankúca) ښځ.م. مچلوغزه، مچوغنه، مچنوغزه، مچوغنده.

**ترنکي** (tarnaki) ص.نب. قهرجن، خوشکتي، عصبي، غوسه ناک، تاوي، تاوجن.

**ترنګ** (trang) نر.م. ۱) دسازغږ، د ساز (سیمي آلو) وهل؛ ۲) دغنمو او اوربشو وږي ایستنه؛ ۳) د لوبو لپاره اوار شوی میدان.

**ترنګا** (trangā́) ښځ.م. (ج. ترنګاوې) د ساز اواز، تنګ ټکور، شرنګا، ترنګا، ترنګا.

**ترنګتوک** (trangtók) یو خوږ اواز، د اوازونو ترکیب، د لنډۍ یا ټپې ترنمي (نه، ینه یا مه).

**ترنګړ** (trangáṛ) نر.م. ګرلشی، ترنګن، کوچنی کمبو، د مزریو شخه جوړ شوی کمبو، د بوسو او وښو راوړلو مزرین جال.

ترنګله (trangála) ښځ.م. یو ډول ونسه ده چې له لښتو یې ټوکرۍ او کجاوې جوړوي.

ترنګو (trangú) نر. م. شرنده، سارنګ، سرنده، غیجکه، غیږکه، سرنده، سارنده.

ترنګوځه (tranguca) ښځ.م. (ج. ترنګوځې) ۱) ماکو، سلایي ګکه، مچړ، یو حشره ده؛ ۲) ترنکوځه، مچنوغزه، مشنوغزه.

ترنګول (trangawə́l) مص. مت. درنګول، رباب وهل، سازټنګول، د موسیقۍ له سیمي آلوڅخه اواز ایستل.

ترنګوونکی (trangawū́nkay) ټنګوونکی، ربابي.

ترنګه (trangá) ښځ.م. (ج. ترنګې) هواره تخته.

ترنګهار (trangahā́r) نر.م. ترنګا، درنګهار، د موسیقۍ د سیمي آلود ترنګ اواز.

ترنګي (trangí) نر.م. د وچو غنمو هغه ډنګر چې وږی یې راکوږ شوی وي.

ترنه انا (tərnaanā́) ښځ.م. د نیا د نیا مور، د انا د انا مور، ورنه انا، ترله انا.

ترنیکه (tərnikā́) نر.م. ترنیکه، د غور نیکه پلار، د نیکه نیکه.

ترنی (tarnáy) نر.م. (ج. ترني) ترنی، محصول، ټکس، ګمرکي محصول، سورسات.

ترو (tro) اد. ۱) ترې، ترېنه، ترنه، ورنه، له، ورڅخه، ورڅني؛ ۲) ترڅو، ترهغو، څو چې، ترهغو چې؛ ۳) نو؛ ٤) ددې لپاره، له دې لامله.

تروالی (turwā́lay) نر.م. (ج. تروالي) ترشي، تریووالی، ترشوالی.

تروان (tarwā́n) نر.م. یو بوټی دی چې د الوبالو په شهر دانې کوي او دانو ته یې سورکی وایي.

تروبی (trobā́y) نر.م. (ج. تروبي) ۱) سرکه، سورکه؛ ۲) تروې اوبه، ترشې اوبه.

تروپ (trop) نر.م. (ج. تروپونه) ۱) تبخیره، ملي ۲) د ملیو هغه فصل چې رنګړې شوي نه وي؛ ۳) و.ګ. تروپ.

تروپړ (trupár) نر.م. ترورزی، د ترورزوی، د عمه زوی، د پلار خوریی.

تروپی (trupáy) نر.م. تریچی، یو ډول تروه سابه دي.

تروتازګي (tarotāzagí) ښځ.م. ۱) تازه والی، تازه توب، شینوالی، شینتوب؛ ۲) خوشحال.

تروټ (troṭ) نر.م. ۱) تروټه، زیان؛ ۲) چټې، عبث ۳) ډار؛ وېره، بېره، څنګ.

تروټمن (troṭamán) ص.نرم. تاواني، زیانمن.

تروټه (tróṭa) ص. نب. ۱) تاواني، تاوان شوی، پر غاړه شوی؛ ۲) بې ارزښته؛ ۳) بار شوی.

تروټه کول (troṭakawə́l) مص.مت. ۱) کوټه کول، تاوانول، وړپر غاړه کول، پربارول؛ ۲) بې قدره کول، بې ارزښته کول.

ترور[1] (tror) ښځ.م. (ج. ترندې، تروریانې) د پلار خور، د مور خور.

ترور[2] (tarū́r) ص. نر.م. ۱) ترهور، وارخطا، وېرېدلی، بېرېدلی؛ ۲) خپه، پریشانه، مشوش.

ترور[3] (tarū́r) نر.م. ۱) ډار، وېره، خوف، وحشت، ډارول؛ ۲) وژل، تښتول.

تروورتوب (tarūrtób) نر.م. ترهورتیا، وارخطایي، تلوالتیا، وارخطاتوب، ترهوروالی.

ترورزی (trorzáy) نر.م. د تورزوی د خاله زوی، د عمه زوی، د پلار یا د مور د خور زوی.

تروركه (troráka) ښځ.م. د ترور وړو نوم دی، د مینې او محبت لپاره استعمالېږي.

تروروالی (torwā́lay) نر.م. عمه کېدنه، خاله کېدنه، خاله والی، عمه والی.

**ترورول**[1] (trorawə́l) مص. مت. تروركول، ترور شمېرل، تروري نېول، ترور بلل.

**ترورول**[2] (tarūrawə́l) مص. مت. وارخطا كول، ترهوول، وېرول، بېرول، داروول.

**ترورول**[3] (torōrawə́l) مص. مت. ترور كول، ترهه اچول، ګډوډي راوستل، وېره اچول.

**ترورۍ** (troráy) ښځ.م. ١) ترور، تروركه، د ترور لپاره د ګرانښت كليمه؛ ٢) تروري، ګېډۍ، لومبړه؛ ٣) چورۍ، مچ شروني.

**تروړه** (troṛá) ښځ.م. (ج. تروړې) ١) جاكړ، جكړ، هغه تياره چې له سيلۍ او باران سره وي؛ ٢) هغه زرتار، ګلابتون چې د نيم ګز په اندازه اوږدوالى ولري؛ ٣) وره بوجۍ؛ ٤) هغه ګونۍ يا بوجۍ چې پوره ډكه نه وي.

**تروړۍ** (troṛáy) ښځ. م. لومبړه، ګيدړه.

**تروړى** (troṛáy) نر.م ١) چتنى، چرندك، چتركى؛ ٢) چتكې دوله زېړه او تورمرغۍ.

**ترووږمۍ** (trozmáy) ښځ.م. تياره، تروږمۍ، هغه شپه چې د سپوږمۍ رڼا پكې نه وي.

**تروسكه** (trúska) ق. ګوندې چې، ښايي چې، تكيه كلام دى.

**تروسه** (tarósa) ق. تراوسه، تردې دمه، تر دې ګړۍ پورې، تردې وخته، تر دې شېبې

**تروسه** (tarwása) نر.م. د خپل طاقت په اندازه، د خپلې وسې هومره، د توان تر حده.

**تروش** (trūš) ص. نر.م. ج. تريو، تروه، تپاك.

**تروشي** (trūšī) ښځ.م. ١) تريووالى؛ ٢) اچار.

**تروښل** (troṣə́l) مص.ل. ١) توړل؛ ٢) تښتول؛ ٣) تروړل.

**تروښول** (troṣawə́l) مص.مت. ١) څه شيز له نظره لرې كول، ډډې ته كول؛ ٢) سپمول، زېرمول.

**تروښېدل** (troṣedə́l) مص.ل. ١) څه شيز له پامه لرې كېدل؛ ٢) ډډې ته كېدل؛ ٣) زېرمه كېدل.

**تروكى**[1] (tarūkay) نر.م. (ج. تروكي) يوډول ترېو پانى بوټى دى.

**تروكى**[2] (tarwakáy) نر.م. (ج. تروكي) يوډول تروه سابه دي چې اومه او پاخه خوړل كېږي.

**تروكى**[3] (trūkáy) نر.م. تروكه، يو بوټى دى چې غېلې غېلې پرځمكه هوار وي.

**ترېوكېدل** (trokedə́l) مص.ل. راتوكېدل، راشنه كېدل، رازرغونېدل.

**تروګى** (trogáy) نر.م. (ج. تروګي) ډډم، يوډول شاروي پرسوونكې ګياه ده.

**ترول** (tarawə́l) مص. مت. ١) داروول، وېرول؛ ٢) په څغلولو سره شاروي تيت و پرك كول.

**ترومى** (trómay) نر.م. (ج. ترومي) يوګوټ اوبه، يو غړپ اوبه.

**ترونه** (tarawə́na) ښځ.م. (ج. تروني) ترهونه، دارونه، وېرونه، بېرونه.

**تروه**[1] (tərwá) نر.ج. ١) د تريو جمع؛ ٢) خميره، خومره؛ ٣) سركه؛ ٤) ښځ. م. ښوره، مالګينه ځمكه.

**تروه**[2] (truwá) ښځ.م. (ج. تروې) كېږه، له منجو او لوخو جوړ پوزى چې د كوټې پر چت اچول كېږي.

**تروې** (tarwé) جن. شلومبې، شرومبې، شوملې؛ د «تروه» جمع.

**تروېت** (tarwét) نر.م. (ج. تروېتونه) ١) د نجوم علم، توريت، پالپوهنه، د فال كتلو فن، ستور پوهنه؛ ٢) فال.

**تروېتون** (tarwetón) نر.م. ستور پوهنه، ستور پېژندنه، استرانومي.

**تروېتی** (tarwetáy) نر.م. ۱) نجومي، ستور پېژندونکی، منجم؛ ۲) فال گر، فال بین.

**ترويج** (tarwíj) نر.م. پابسونه، رواجونه، دودونه، خپرونه، پراخونه، تيتونه.

**ترويجول** (tarwijawə́l) مص. مت. رواجول، دودول، خپرول، پراخول، تيتول.

**تروېدل** (tarwedə́l) مص. ل. ترېوېدل، تروشېدل، توکېدل، مالگين کېدل.

**تره**[1] (tra) نر.م. کاکا، اکا، د پلار ورور.

**تره**[2] (tará) ښځ.م. (ج. ترې) ۱) څېره، رنگ، شکل، جثه؛ ۲) څېر، پر څېر؛ ۳) چمبرخيال، چمبرخيال، يو ډول داروېي بوټی چې د نري اوږد بادرنگ په څېر وړې کوي.

**ترها** (trahā́) ښځ.م. (ج. ترهاوې) و گ. ترهه.

**ترهاو** (tirhā́w) نر.م. اوړی، وړی، پيمانه، د غلې پيمانه، صاع.

**تره خولی** (traxwū́lay) نر.م. تورخولی سېرلی، هغه پسه يا سېرلي چې شونډک يې تور وي.

**ترهره** (tarhára) ښځ.م. (ج. ترهرې) ترهه، دار، وېره، بېره، بيم، سترگه سوځېدنه.

**ترهړه** (tarhára) ښځ.م. (ج. ترهړې) د ترهې ځای، د وېرې ځای، خطرناک ځای.

**ترهغو** (tarhağó) ق. ۱) ترهغه وخته، تر هغه پورې ۲) ترڅو پورې، ترڅو، تر کومه چې.

**ترهند** (tarhánd) ص. نر.م. ج. و گ. ترند.

**ترهور** (tarhū́r) ص. نر.م. ج. ۱) وارخطا، ترور، تلولی، حيران، وېرې اخيستی، دار اخيستی؛ ۲) بې سترگو، نابينا، ړوند. (و گ.: ترور).

**ترهورتيا** (tarhūrtyā́) ښځ.م. و گ.: ترورتوب.

**ترهوري** (tarhurí) ښځ.م. وېره، وارخطايي، بيم.

**ترهول** (tarhawə́l) ص. نر.م. وېرونکی، بېرونکی، دارونکی.

**ترهه** (tráha) ښځ.م. (ج. ترهې) دار، وېره، بېره.

**ترهېدا** (trahedā́) ښځ.م. دارېدا، وېرېدا، ترهېدا، وېرېدنه، دارېدنه، بېرېدنه.

**ترهېدل** (tarhedə́l) مص. ل. دارېدل، وېرېدل، بېرېدل، يرېدل، وارخطا کېدل.

**ترهېدونکی** (tarhedū́nkay) ص. نر.م. ۱) ترېدونکی، دارېدونکی؛ ۲) شکمن، دوه زړی، زړه نازړه، زړغی.

**تری**[1] (taráy) ق. ۱) په پټه، په غلا، په خفيه؛ ۲) ښځ.م. اخور، د ژرندې يا ميچنې هغه ځای چې اوړه په کې توليږي؛ ۳) ناوه، ترې، پرناله.

**تری**[2] (turáy) ښځ.م ۱) د دوو غرونو په منځ کې تېره شوې لاره؛ ۲) پېچومی؛ ۳) سورنا، نی.

**تري** (tarí) جن. ۱) بوره، شکره، چيني؛ ۲) غوراوره.

**ترې**[1] (tre) اد. ترېنه، ورڅخه، څني، ورنه، ورڅه، له ده نه، له ده څخه، له دې څخه.

**ترې**[2] (táre) ښځ.م. اچې، کچې، دوزې د شړلو غږ.

**تری** (tray) نر.م. د کاکبنې سوری، د کښې سوری، د کمبو سوری.

**ترې ترل** (taraytarə́l) مص.ل. چاره کول، تدبير کول.

**ترياق** (taryā́q) نر.م. ج. زهرو دارو، پاد زهر، يو ډول دارو دي چې د زهرو اغېز کموي.

**تريب** (trib) نر.م. (ج. تريبونه) و گ.: تريو.

**تريت** (tarít) نر.م. کل، کونجاړه، ترېډ.

**تری تم** (taraytám) ق. لادرکه، بې پتې، ناڅاپه، ورک، نابېره له سترگو نيهام.

**تريتی** (tritáy) نر.م. يوه غرنۍ ونه ده چې ترورې دانې کوي.

**تریچی** (tričáy) نر.م. و گ. تروېی.

**تریخ** (trix) ص. نر.م. (ج. ترخه، تراخه) ۱) دخوږ ضد؛ ۲) غوسه ناک؛ ۳) گران؛ ٤) غیرتي، همتي، همتناک، مېړنی.

**تریخ بخن** (trixbaxwə́n) ص. نر.م تریخ بخنی، ترخه ته نږدې، تریخ غوندې تریخوزمه.

**تریختوب** (trixtób) نر.م. تریختیا، تریخوالی.

**تریخ توری** (trixtorə́y) ښځ.م. کربله، کرېږه، یو ډول تریخ سابه دي.

**تریخجن** (trixján) ص.نر.م. ۱) تریخ بخن، تریخ خوند لرونکی؛ ۲) غوسه ناک، قهرجن.

**تریخ دریاب** (trixdaryā́b) نر.م. سمندر، بحر، کاړي دریاب.

**تریخول** (trixawə́l) مص.مت. تریخ کول، ترخول، د خوږولو ضد.

**تریخی** (tríxay) نر.م. (ج. تریخي) ۱) دصفرا کڅوړه، د صفرا کیسه، زهره؛ ۲) غیرت.

**تریخېدل** (trixedə́l) مص. ل. ۱) ترخېدل، تریخ کېدل؛ ۲) غوسه کېدل، قهرجن کېدل.

**ترېدل** (taredə́l) مص. ل. و گ: ترهېدل.

**تریړه** (triṛá) ښځ.م. (ج. تریړې) و گ: ترړې.

**تریز** (triz) نر.م. کاسني، تریژه، یو ډول بوټی دی.

**تریږه** (triẓá) ښځ.م. (ج. تریږې) ۱) روغني، غوره ډوډی؛ ۲) پاستې، شپېتې، تیکی.

**تریل** (taríl) نر.م. پتنوس، د چاینکو، پیالو او نورو شیانو د وړلو راوړلو لوښی.

**تریلی** (trilə́y) نر.م. (ج. تریلي) حوض، ډنډ، تالاو جوړ، تیلی.

**تریناک** (tarinā́k) ص.نر.م. ۱) ترهند، ترند، وحشي؛ ۲) زورباز، ښکاري باز.

**تریناکه** (tarinākə́) ښځ.م. یو مرغی ده.

**ترېنداره** (trendā́ra) ښځ.م. و گ: ترنداره.

**ترینګړ** (tringáṛ) نر.م. مانجه، باجه، د موسیقي یو دري ګوتېزه آله ده.

**ترینګلی** (tringaláy) ښځ.م. ج. ۱) ګوتړک، کته پیش، تینګړی، پشکوړی، د دوو ګوتو تک؛ ۲) نرۍ اواز؛ ۳) ص.نر.م. تریو، تریو تندی، بدخویه؛ ۲) بخیل، خسیس.

**ترینګی** (tringə́y) ښځ.م (ج. ترینګي) نرۍ اواز، د نرۍ اواز دنامه.

**تریو** (triw) ص. نر.م. (ج. تروه، تراوه) ۱) تروش، ترش، تاک؛ ۲) بدخویه.

**تریوبخن** (triwbaxwə́n) ص. نر.م. تریو غوندې، تریو بخوند، تریو بخون.

**تریوتریوکی** (triwtriwákay) نر.م. تروکی، تروکی، یو ډول سابه دي چې تریو خوند لري.

**تریو تندی** (triwtánday) نر.م. ۱) تروه تندی، تریو وچولی؛ ۲) قهر، خوشکه، غوسه، غضب.

**تریوتوب** (triwtób) نر.م. تریوتیا، تریووالی.

**تریوخوږی** (triwxwáẓay) نر.م. سکنجبین، یو ډول تریو غوندې خوږ شربت دی.

**تریو خوندی** (triwxwánday) ص.نر.م. تروش خوندی، تریوبخوند، تریو بخن، تاکجن.

**تریوړی** (triwṛáy) نر.م. بادرنګ، نګوری.

**تریو مخی** (triwmáxay) ص.نر.م. ترش مخی، بدمخی، خوشکتي، قهرجن، بدخویه.

**تریوناک** (triwnā́k) ص.نر.م. ۱) تریو وزمه، تروش خونده، تریو خونده، ترشناک.

**تریونګلی** (triwanglə́y) نر.م (ج. تریونګلي) ۱) مرجونی چکني، اچار؛ ۲) تریونګولی.

**تریووالی** (triwwā́lay) ص.نر.م. تریوتوب، تریوتیا، ترشوالی، تاکوالی.

**تریووزمه** (triwwázma) ص. نب. تریو شانته، لږ غوندې مالګین، ترینا ک، تروشناک.

**تریوول** (triwawə́l) مص. مت. تریو کول، تروش کول، مالګینول، تپاک کول، تروشول.

**تریوی** (triway) نر.م. (ج. تریوي) د پوې غرنی ونې تروې دانې دي؛ د تریو انار وچې دانې.

**تریوېدل** (triwedə́l) مص.ل. ۱) تروېدل، تپاک کېدل، ترشېدل؛ ۲) خپه کېدل، غوسه کېدل.

**تریه** (tárya) ښځ.م. ازیه، ډره، ډریه، ډری، د مېږو او وزو د شړلو اواز.

**تړ** (taṛ) نر.م. (ج. تړونه) ۱) شرط؛ ۲) غوټه، غنډه، ګنډه؛ ۳) د اوبو بند، بند؛ ٤) لویه ګټه (تیږه)؛ ٥) قرارداد؛ ٦) اتفاق، تړون؛ ۷) ملاتړ.

**تړازه** (taṛáza) ښځ.م. (ج. تړازې) و ګ. ترازه.

**تړاک**(۱) (taṛák) نر.م. (ج. تړاکونه) ۱) صف، کتار، قطار، چیل؛ ۲) خوا، ډډه، اړخ.

**تړاک**(۲) (tṛāk) نر.م. تراق، د څه شي د ماتېدو اواز.

**تړاکی** (tṛākáy) نر.م. ترکی، لنګوټی، چوټی، لنګ، هغه کوچنی لنګ چې د لمبلو او غېږو نیولو په وخت کې تړل کېږي.

**تړانګه** (taṛā́nga) ښځ.م. ۱) چیږه، ریښکی، د توکر لویه ریتاره؛ ۲) څیره، برانګه، د ځمکې اوږده ترازه.

**تړانګې تړانګې** (taṛāngéṭṛāngé) ص. ښځ.م لتاړې لتاړې، پړانګې پړانګې.

**تړاو** (taṛā́w) نر.م. (ج. تړاوونه) ۱) د جرېب کولو پړی؛ ۲) تړون، اړیکه، علاقه، اړه.

**تړبوخه** (taṛbū́xa) ښځ.م. دوپه، تربوخته، بنده، دپه، بدبویه هوا.

**تړپ** (tṛap) نر.م. ۱) د پلن شیز د غورځېدلو اواز؛ ۲) ناکراري؛ ۳) توندي، تېزي؛ ٤) بې صبري.

**تړپول** (tṛapawə́l) مص.مت. ۱) تپول؛ ۲) ناکراره کول، ناارامول؛ ۳) حرکت ورکول، تپول، بښورول.

**تړپهار** (tṛapahā́r) نر.م. چړپهار؛ ۱) د اوبو د غڅلېدو اواز؛ ۲) په اوبو کې د غورځېدو اواز.

**تړپېدل** (tṛapedə́l) مص.ل. ۱) تپېدل، توپلېدل؛ ۲) نا ارامېدل، ناکرارېدل.

**تړتړی** (taṛtaṛáy) ص. نر.م. توری، تتری، تتله.

**تړتک** (taṛták) نر.م. ناکراري، نا ارامي.

**تړڅپه** (taṛcapá) ارتباطي هجا، د تړ خپلواک پر ځای راتلونکی څپه.

**تړخپلواک** (taṛxpalwā́k) د دوو ژبنیو توکونو تړونکی (رابط) خپلواک (واول).

**تړژبی** (taṛžábay) ص. نر.م. و ګ. تړتړی.

**تړس** (tṛás) نر.م. د لرګي د ماتېدو اواز.

**تړښت** (taṛáṣt) تړاو، ترنګ، ترکیب، طرز ترکیب.

**تړښتي** (taṛaṣti) ص. ترکیبي.

**تړغونډله** (taṛğwándla) ص. عطفیه جمله.

**تړق** (tṛaq) نر.م. ۱) ترک، د دوو شیانو په خپل منځ کې د لګېدلو اواز.

**تړک** (taṛák) نر.م. کیکړی، تلکه، تلک.

**تړکانی** (taṛkāṇáy) نر.م. (ج. تړکاني) یو ډول بوټی دی چې تورې تورې دانې کوي.

**تړکه**(۱) (tṛáka) ښځ.م. ۱) تکه، اسماني تندر؛ ۲) د مردکو، مردکیو، تیکانو لوبه.

**تړکه**(۲) (taṛaká) ښځ.م. (ج. تړکې) پتکه، دړکه، دباب، ګوابښ، سترګې پرې ورایستنه.

**تړکه**(۳) (t(u,a)ṛká) ښځ.م. (ج. تړکې) داغ، سره کړې غوړې، نکولې ته د غوړو تبی.

**تړکی** (taṛákay) نر.م. (ج. تړکي) کوچنی لنګ، وړوکې لنګ، چوټی، چیتی، چوټی.

**تړکی** (tṛakáy) نر.م. بچوګی، د مېچلو غزې د سر هغه نرۍ تار چې د تېرې ويشتلو په وخت کې پرېښودل کېږي او اواز ترې وځي.

**تړګړ** (targáṛ) لږ يو فونيمي مورفيم چې د کړ (فعل) يا نوم ولې له نورو اړوندو کړنو سره تړي.

**تړل** (taṛə́l) مص.مت. ۱) غوټه ورکول، ګنډه ورکول ۲) بندول؛ ۳) تينګول، پابند کول.

**تړلې څپه** (taṛəle capá) پورې څپه، کنسوننټ پای څپه.

**تړلی خپلواک غږ** (taṛəlayxpəlwākǧə́ź) پورتنی خپلواک (high vowel).

**تړليک** (taṛlík) نر.م. (ج. تړليکونه) قرارداد، لوزنامه، تړونليک، عهدنامه.

**تړم** (táṛəm) ص. نر.م. ج. لږ غوندې ګرم، نيم تود، شيرګرم، تومن.

**تړمبه** (tṛumbá) ښځ.م. ناتار، هغه ډوډۍ چې په مستو او شلومبو کې ميده شوې وي.

**تړمتوب** (taṛamtób) ص.نر.م. تړمتيا، تړموالی، لږ غوندې تودوالی، شيرګرموالی.

**تړمول** (taṛmawə́l) مص.مت. لږ ګرمول، لږ تودول، تودول، تړم کول، ايله تاو ورسول.

**تړمېدل** (taṛmedə́l) مص.ل. ګرمېدل، لږتودېدل، شيرګرمېدل.

**تړنګ**[1] (tṛang) نر.م. ترنګا، ټنګار، دساز اواز.

**تړنګ**[2] (taṛáng) نر.م. ۱) ترکيب؛ و.ګ. تړنه؛ ۲) هغه لويه تيږه ده چې ختل پرې ګران وي.

**تړنګهار** (tṛangahā́r) نر.ج. تړنګا، ټنګا، ټنګهار، د موسيقۍ د سيمي آلو پرله پسې غږول.

**تړنه** (taṛə́na) ښځ.م. (ج. تړنې) تړنګ، غوټه وراچونه، بندونه، غوټه ورکونه.

**تړو** (taṛū́) ص.نب. ايلتې ويونکی، چټې بول.

**تړوبی** (taṛobáy) نر.م. (ج. تړوبي) د اوبو سونلکه، د اوبو بمبه، د اوبو نل.

**تړومبی** (tṛombáy) نر.م. تودې شړومبې، تودې شلومبې، تودې شوې تروې، متر.

**تړون** (taṛū́n) نر.م. ۱) تړنه، غوټه ورکونه؛ ۲) دود، دستور؛ ۳) قرارداد؛ ٤) اړيکه؛ ۵) بنديز، قومي تينګه، تړه، ناغه؛ ٦) اتحادکونه، اتفاق

**تړونليک** (taṛūnlík) نر.م. و.ګ. تړليک.

**تړون ماتی** (taṛūnmā́tay) ا.ص.م. تړون ماتوونکی تړماتی، ژمن ماتی.

**تړونوال** (taṛūnwā́l) ا.م. تړون والا، قراردادي.

**تړوني** (taṛuní) ص. د تړون اړوند، قراردادي.

**تړونی** (taṛū́nay) نر.م. د تړلو شيز، د تړلو آله.

**تړوييکی** (taṛwayíkay) ا.م. د عطف توری يا ادات (او).

**تړه** (taṛá) ښځ.م. ۱) لاره؛ ۲) سخته ځمکه؛ ۳) اراده، قصد؛ ٤) لوز، اقرار، وعده؛ ۵) تېره څوکې غونډۍ؛ ٦) لويه تيږه؛ ۷) دود، دستور؛ ۸) قومي غږ؛ ۹) يوه لويه تخته د کړ ځمکه.

**تړهار** (tuṛhā́r) نر.م. د تر تړې سرې پرله پسې خبرې.

**تړيسکي** (taṛiskí) ښځ.ج. کړاوونه، نادودې، ناخوالې، ناکردې، سختې، سرې تودې، غمونه، رېړونه.

**تړيسمار** (taṛismā́r) نر.م. ۱) ډېره ګرمي؛ ۲) د تړيک د ګوليو باران او اواز.

**تړيکه** (tṛíka) ښځ.م. (ج. تړيکې) شړيکه، درد، بربېښ، تکليف.

**تړی** (táṛay) ص. نر.م. تتله، تړژبی، تتله.

**تز** (tiz) نر.م. ۱) تېزس، رساله، د دکتورا رساله؛ ۲) مبحث، د بحث موضوع، قضيه، فرض.

**تزار** (tazā́r) نر.م. سزا، جزا.

**تزاید** (tazāyód) نر.م.ج. زیاتوالی، ډېروالی، لوړوالی، اضافه والی.

**تزریق** (tazríq) نر.م. ۱) پېچکاري، ستن وهل.

**تزک** (tozók) نر.م. ۱) انتظام، ترتیب؛ ۲) شان، پرتم، شوکت، برم؛ ۳) ورځني یادښتونه.

**تزکیه** (tazkiyá) ښځ.م. ۱) پاکونه، پېځوونه، پاکي، پاکوالی؛ ۲) زکات ورکول.

**تزلزل** (tazalzól) نر.م. ۱) رپا، ښوېدنه، رپېدېدا، بې استقامتي؛ ۲) دوه زړه توب.

**تزنېدل** (toznedә́l) مص.ل. په قهرېدل، غوسه کېدل، خپه کېدل.

**تزوی** (tazáway) نر.م. یو ډول واښه دي.

**تزویر** (tazwír) نر.م. (ج. تزویرونه) مکر، فریب، چل، چل ول، دوکه کونه، تېرایستنه.

**تزی** (tázay) نر.م. ۱) توزی، هغه گردی ځرمن یا توکرچي د خېمې په منځنۍ برخه کې د خېمې د ستنې سر پکې کلکوي؛ ۲) بمبل، د جوارو بمبل، د جوارو گل.

**تزید** (tazyíd) نر.م. زیاتوالی، ډېروالی.

**تزیین** (tazyín) نر.م. ۱) تزئین، ښکلي کونه، سینگارونه؛ ۲) ښایست، ښکلا.

**تزییني** (tazyiní) ص.نب. د تزیین، د ښکلا، د تزیین اړوند.

**تږل** (tazә́l) نر.م. چمتووالی، تیاری، امادگي.

**تږم** (tazm) نر.م. بدبوی، وږم.

**تږمجن** (tazmján) ص.نر.م. وږمجن، توږمجن، وږم لرونکی، بوین.

**تږی** (tázay) ص.نر.م. ۱) تندي اخیستی، اوبو ښنبلوته اړ؛ ۲) هیله من، لېوال، ارزومند.

**تس** (tas) ص.نر.م ۱) تش، ډډ؛ ۲) غورځول شوی، ارتاوشوی؛ ۳) د اوبو د پاخولو، شرلو اواز.

**تساند** (tasánd) نر.م. لاس ورکونه، مرسته.

**تساوي** (tasāwí) ښځ.م. برابروالی، سره برابرېدنه، یو شان کېدنه.

**تسبک** (tasbák) ص.نر.م. ۱) کلک، محکم؛ ۲) ښېغ، سیخ، سم.

**تسبیح** (tasbíh) ښځ.م. سبحان الله ویل، د پاک خدای (ج) ثنا و صفت او په پاکۍ سره یادونه.

**تسخیر** (tasxír) نر.م. مسخر کول، په کابو کې راوستل، قبضه کول، اېلونه، رامول.

**تسخین** (tasxín) نر.م. تودونه، گرمونه.

**تسریع** (tasrí') ښځ.م. چټکونه، تېزول.

**تسطیح** (tastíh) ښځ.م. پلنونه، هوارونه.

**تسکره** (taskerá) ا.م. د ناروغانو د لېږدونې ارابه یې کټ.

**تسکوره** (taskóra) ښځ.م. ۱) تسکوره، د لوښي تبنگې په څېر یو بزگري آله ده؛ ۲) کهی.

**تسکین** (taskín) نر.م. ۱) تسلي، ارام، اسوده، اطمینان؛ ۲) کرارونه، ارامونه.

**تسلسل** (tasalsól) نر.م. ۱) پرله پسې والی، یو له بل سره مبنتي؛ ۲) د نا متناهي چارو ترتیب.

**تسلط** (tasalót) نر.م ۱) مسلط کېدنه، لاس برېدنه، حاکمیت لرنه؛ ۲) بریالیتوب، برېدنه.

**تسلي** (tasalí) ښځ.م. ۱) تسل، داډ، داډگېرنه، داډینه، اطمینان؛ ۲) یقین، باور.

**تسلیح** (taslíh) ښځ.م. په وسله سمبالونه.

**تسلیحاتي** (taslihāti) ص.نب. د وسلې، د سلاح، د وسلې سره تړلی، وسله واله.

**تسلیخ** (taslíx) ښځ.م. ۱) حلالونه، وندی کونه، قصابي کونه؛ ۲) مصله، جای نماز.

**تسلیم** (taslím) نر.م. سپارل، منل، قبلول، غاړه اېښودنه، اېلېدنه، تابع کېدنه.

**تسليمول** (taslimawə́l) مص. مت. ۱) منل، غاړه ايښودل؛ ۲) تابع کول؛ ۳) سپارل، حواله کول.

**تسليمي** (taslimí) ښځ.م ۱) قبلونه؛ ۲) ايلونه، تابع کېدنه؛ ۳) ورسپارنه، ورحواله کونه.

**تسليمېدل** (taslimedə́l) مص.ل. ۱) قبلېدل؛ ۲) تابع کېدل؛ ۳) حواله کېدل، سپارل کېدل.

**تسمه** (tasmá) ښځ.م. (ج. تسمې) د څرمنې پټې، ملابند، ملاتړونې، ملاوستنې.

**تسمه غوړ** (tasmağwáṛ) نر.م. هغه موم چې موچيان تسمې پرې غوړوي.

**تسميه** (tasmiyá) ښځ.م. نومونه، بلنه، يادونه، نوم ايښودنه، نوم ورکونه، په نوم غوښتنه.

**تسمم** (tasamóm) نر.م. زهرناک کېدنه، زهرجن توب، زهرجنوالی.

**تس نس** (tasnás) ص.نب ۱) تيت و پرک، ګډوډ؛ ۲) ژر خلاص شوی، تمام شوی.

**تسو** (tasū́) نر.م. ۱) يو نيم انچ؛ ۲) د ځمکې وړه برخه، د بسواسې شلمه برخه.

**تسول** (tasawə́l) مص.مت. ۱) تشول، خالي کول؛ ۲) غورځول؛ ۳) دزول، دزکول.

**تسويد** (taswíd) نر.م. مسوده کونه، له پاک ليکنې نه مخکې ليکل.

**تسيا** (tasyā́) ص. نب. ۱) بې هوشه، بېخوده، بې حسه؛ ۲) خالي والی، تشوالی.

**تش** (tə́š) ص. نر.م.ج. ۱) خالي، تس؛ ۲) فقط، ايله، يوازې، دومره؛ ۳) دد، ګوګ.

**تشاکل** (tašākúl) نر.م. يو څېر کېدنه، يو ډول کېدنه

**تش بازو** (təšbāzū́) نر.م. بې څه وسيلې لامبو، تشلاسې لامبو، له خيګ يا شناز پرته پورېوتل.

**تش بانې** (təšbāṇáy) نر.م. بې پنډه، بې سامانه، بې پنډې، تش لاس روان.

**تشبث** (tašabós) نر.م. مداخله، پلتنه، کارلرنه، ګروېږنه، کنجکاوي، لاس وهنه.

**تشبه** (tašabóh) ښځ.م. ۱) ورته والی، يوشان والی، غوندې، په څېر؛ ۲) بد. يو يا څو شيان چې ګډه وجهه ولري.

**تشبيه** (tašbih) ښځ.م. مشابه کول، ورته کول، د دوو شيانو مانيزه يووړنګي.

**تش پانې** (təšpāṇáy) نر.م. ۱) بې وسلې، تش لاسی، د جنګ پر وخت بې وسلې سړی.

**تشتت** (tašatót) نر.م. ۱) تيتېدنه، خپرېدنه، تيتوالی؛ ۲) پرېشاني.

**تشتوب** (təštób) نر.م. و ګ. تشوالی.

**تش تور** (təštór) ص. نر.م.ج. ۱) بېخي تش، خالي لاس؛ ۲) ناکام، پاتې، بې برخې.

**تشتيا** (təštyā́) نر.م. و ګ. تشوالی.

**تشتينه** (taštiná) ښځ.م. ۱) وريته غوښه، کباب غوښه؛ ۲) د پسه د ژامې غوښه.

**تشجيع** (tašjíʔ) ښځ.م. جرأت ورکول، زړه وروونه، زغړدونه، رټونه.

**تشخص** (tašaxús) نر.م. ۱) ټاکل کېدنه؛ ۲) توپير پيدا کېدنه، بېلونه، ځانګړې کونه، معلومېدنه، پېژندل کېدنه.

**تشخيص** (tašxís) نر.م. ۱) ټاکل، مقررونه، تعيينونه؛ ۲) د ناروغۍ معلومونه؛ ۳) اندازه لګول، بېلول، توپير کول، جلا کول.

**تشخيصي** (tašxisí) ص. نب. ۱) د تشخيص؛ ۲) بېلوونکی، جلا کوونکی.

**تشدد** (tašadód) نر.م. ۱) سختي، زياتي، جبر؛ ۲) په سياست کې: وسله وال پاڅون.

**تشدید** (tašdíd) نر.م. زوراچونه، فشار راوستل، د شد علامه(ّ)، د یوه جنس دوه حرفونه په یوه حرف لیکل او په دوو حرفونو لوستل.

**تش ذهنی** (təšzéhnay) ص.م. بنګوله، بې خبره.

**تشریح** (tašríh) ښځ.م. ۱)شرح کول، بیانونه؛ ۲)ټوک ټوک کول، وند وند کول.

**تشریحي** (tašrihí) ص.نب. د تشریح، مفصل، تفصیلي، مشرح.

**تشریح کېدل** (tašrihkedə́l) مص. ل. شرحه کېدل، بیانېدل، روښانه کېدنه، څرګندېدل.

**تشریف** (tašríf) نر.م. ۱)شریفونه، شریفول؛ ۲)عزت ورکول، لویونه.

**تشریف راوړل** (tašrifrāwṛə́l) مص. ل. راتلل، په درنښت راتلل.

**تشریفات** (tašrifā́t) نر.ج. ۱)د تشریف جمع؛ ۲)رسمي او ظاهري هرکلی یا خبرې.

**تشعشع** (tašaʔšoʔ) ښځ.م. روښنایي کول، ځلېدل، وړانګه اچول کېدل.

**تشکارول** (tuškārawə́l) مص. مت. سپی ورتو کول، ایش کول، کشکارول.

**تش کالبوت** (təškālbút) ص.نر.م. ۱)بې سا، خالي جثه؛ ۲)بې ښې، بې توښې، بې ژبې.

**تشکر** (tašakór) نر.م. کورودانی، شکریه، مننه.

**تشکل** (tašakól) نر.م. (ج. تشکلونه) ۱)ښه پیدا کول، منځ ته راتلل؛ ۲)ښکلی کېدنه.

**تشکیل** (taškíl) نر.م. ۱)جوړښت، ساختمان، رغښت، سازمان، تاسیس؛ ۲)جوړول، سازمان ورکول.

**تش ګوګ** (tašgóg) ص. نر.م. ج. تش کالبوت.

**تش لاس** (təšlā́s) ص.نر.م. ۱) خالي لاس؛ ۲)مفلس، غریب، کنګال؛ ۳)بې وسلې.

**تش مغزی** (təšmáǧzay) ص.نر.م. بې مساغزه، ناپوه، بې عقله، بې فکره، کم عقله.

**تش لباس** (təšlibā́s) ص. نر. م. لباسي، خالي، خوشامنده، د ظاهر داری خبرې.

**تشناب** (tašnā́b) نر.م. لمباځی، غسل خانه، چم چوبی، چمچوبی.

**تشناب کاغذ** (tašnābkāgaz) ځانپاکی کاغذ، د استنجا کاغذ.

**تشنج** (tašanój) نر.م. ۱)ګړودي، کړکېچ.

**تشنګ** (tšang) نر.م. تنده، تږی توب، تږی کېدنه.

**تش نوم** (təšnū́m) نر.م. خالي نوم، صرف نوم، تش په نامه، یوازې په نوم.

**تشوالی** (təšwā́lay) نر.م. تشتوب، خالیتوب، تستوب، تشوالی، ګوګوالی.

**تشوکی** (təšū́kay) ص. نر.م. (ج. تشوکي) خالي، تش، ګوګ.

**تشول** (təšawə́l) مص. مت. خالي کول، تسول.

**تشوونی** (təšawū́nay) نر.م. د تشولو آله، د خالي کولو وسیله.

**تشویش** (tašwíš) نر.م. پرېشاني، فکر، سوچ، سودا، اندېښنه.

**تشویق** (tašwíq) نر.م. هڅونه، لمسونه، پارونه، په شوق راوستنه، ترغیبونه.

**تشویقول** (tašwiqawə́l) مص. مت. هڅول، پارول، لمسول، په شوق راوستل، مایله کول.

**تشه** (təša) ښځ.م. (ج. تشې) ۱) خالي، خلا، فضا؛ ۲)د تش ښځینه شکل.

**تشهیر** (tašhír) نر.م ۱)شهرت ورکونه، مشهورونه؛ ۲)شرمونه، مسخره کونه.

**تشی** (tə́šay) نر.م. تسی، د پښتیو د څنګ لاندنی برخه چې پښتورګي پکې وي.

**تشېدل** (təše dúl) مص. ل. تسېدل، خالي کېدل.

**تښتکی** (taṣtakáy) نر. م. کودنی، مات کندولی، د سپو او چرګانو داوبو څښلو خاورین لوښی.

**تښتن** (təṣtén) نر. م. څښتن، بادار، مالک، اقا.

**تښتند** (təṣtánd) ص. نر. م. ۱) تېښتې ته تیار، منډې ته تیار؛ ۲) څښند، په قهر او غضب تېرېدونکی.

**تښتول** (təṣtawə́l) مص. مت. ۱) په منډه کول، ځغلول؛ ۲) په زور بېول؛ ۳) لرول، پېرول.

**تښتېدل** (təṣtedə́l) مص. ل. ۱) په منډه کېدل، ځغلېدل؛ ۲) ښځه متیزه کېدل؛ ۳) پرېدل.

**تښغ** (təṣáǰ) ښځ. م. تخغ، تېښته، تګ ښغ.

**تښل** (taṣə́l) مص. ل. و ګ. تښتېدل.

**تښن** (taṣə́n) تښند، تښتېدونکی، فراري، ګرېزپا.

**تصاحب** (tasāhób) نر. م. څښتن کېدنه، خاوند کېدنه، ترلاسه کونه.

**تصادف** (tasādóf) نر. م. پېښېدنه، مخامخېدنه، چانس، ناڅاپي پېښه، ناڅاپي کار، برابري.

**تصادفي** (tasādofí) ص. نب ناڅاپي، غیرارادي، نابېره، ناخبره، اتفاقي.

**تصادم** (tasādóm) نر. م. ټکر، لګېدل، لګېدنه، جنګېدنه، ګرګچې، کرچ، سره لګېدل.

**تصاعد** (tasāʔód) نر. م. جګېدنه، پورته کېدنه، لوړېدنه، زیاتېدنه.

**تصحیح** (tashíh) ښځ. م. سمونه، اصلاح کونه، غلطي لرې کول.

**تصدي** (tasadí) ښځ. م (ج. تصدی) ۱) پر غاړه اخستل، یو کار پر ذمه اخیستل؛ ۲) موسسه، اق. تنظیم، تشبث، شرکت.

**تصدیق** (tasdíq) نر. م. ۱) رښتیا ګڼل، تاییدونه؛ ۲) شهادت، شاهدي؛ ۳) سند، ثبوت.

**تصدیقول** (tasdiqawə́l) مص. مت. ۱) رښتیا بلل، تاییدول، رښتیا ګڼل؛ ۲) منل، قبلول.

**تصرف** (tasarrúf) نر. م. ۱) قبضونه، قبضه کول، ترلاسول، نیونه؛ ۲) یوشه پر خپل ذوق اړونه او تغییر ورکول.

**تصریح** (tasríh) ښځ. م. څرګندونه، ښکاره کونه، جوتونه، صراحت ورکونه.

**تصریف** (tasríf) نر. م. ۱) مصرفونه؛ ۲) تغییر ورکونه، اړونه؛ ۳) په واک کې ورکول، ورسپارنه؛ ٤) د صرف علم: د کلیمو اشتقاق، له یوې کلیمې بله جوړونه او اړونه.

**تصریفي** (tasrifí) ص. نب. ۱) د تصریف؛ ۲) د تغییر ورکونې (مورفولوجیکي، صرفي).

**تصغیر** (tasǧír) نر. م. ۱) وړونه؛ ۲) په ګرامر کې هغه کلیمه چې موسوم ته د کوچنیوالي او یا ګرانښت لپاره استعمالېږي

**تصفیه** (tasfiyá) ښځ. م ۱) چڼونه، چاڼونه، پاکونه؛ ۲) فیصله کونه، خلاصونه.

**تصمیم** (tasmím) نر. م. ۱) پتېینه، پتېیل؛ ۲) نیت، ویلاړ، اراده.

**تصنع** (tasanóʔ) ښځ. م ۱) ځان ښودنه، ځان ښوونه، برېښونه؛ ۲) تګي برګي، چل ول.

**تصنعي** (tasanoʔí) ص. نب. ۱) د ځان ښودنې، ظاهرسازي؛ ۲) تظاهري، غیر حقیقي.

**تصنیف** (tasníf) نر. م. (ج. تصنیفونه) ۱) صنف صنف کونه، ګروپ بندي کونه؛ ۲) د کتاب لیکل او ترتیبونه.

**تصور** (tasawór) نر. م. (ج. تصورونه) ۱) خیال؛ ۲) سوچ، چورت، اندېښنه؛ ۳) ګومان.

**تصوري** (tasaworí) ص. نب. ۱) د تصور، خیالي ۲) چورتي، ګوماني.

**تصوف** (tasawóf) نر.م. ۱) صوفي کېدنه، د نفس دپاکولو طريقه، درويشي، طريقه او مسلک ۲) هغه علم چې د زړه تزکيه په کېږي.

**تصويب** (taswíb) نر.م. ۱) سم او صحيح گڼل، د يو کار دسموالي او ناسموالي په اړه حکم کول؛ ۲) د واکمن مجلس له خوا د يوې موضوع په اړه رايه ورکول.

**تصوير** (taswír) نر.م. (ج. تصويرونه) انځور، نقش، صورت، عکس، شکل، څېره، فوتو.

**تصويرول** (taswirawə́l) مص. مت. انځورول، مجسمول، شکل ورکول، کښل.

**تضاد** (tazād) نر.م. ۱) مخالفت، ورانوالي؛ ۲) د نظم او نثر هغه صنعت چې ضد کليمې په کې وي، لکه تور و سپين.

**تضرع** (tazarós) ښځ.م. (ج. تضرع گانې) زارۍ، زاري، عاجزي او عذر کونه.

**تضمين** (tazmín) نر.م. ۱) ضمانت کول، ژمنه کول، ذمه واري، گرنټي؛ ۲) په شاعرۍ کې دچا پر شعر باندې مسرۍ جوړول.

**تضمينول** (tazminawə́l) مص. مت. ضمانت کول، ژمنه کول، په ذمه اخستل.

**تطابق** (tatābóq) نر.م.ج. برابرېدنه، يو شان کېدنه، يو له بله سره يو ډول او متفق کېدنه.

**تطاول** (tatāwól) نر.م. تېری، ظلم.

**تطبيق** (tatbíq) نر.م.ج. ۱) دوه يا زيات شيان سره برابرېدنه؛ ۲) عملي کونه، اجرا کونه.

**تطبيقول** (tatbiqawə́l) مص. مت. ۱) سره برابرول، سره سمول؛ ۲) اجرا کول، عملي کول، پرځای کول.

**تطبيقي** (tatbiqí) ص. نب. ۱) د تطبيق وړ، تطبيقېدونکی؛ ۲) عملي، د اجرا وړ.

**تطميع** (tatmíʕ) ښځ.م. په طمع کونه، په تمه کونه، هيله من کونه، منتظرونه.

**تطور** (tatawór) نر.م. ډول ډول کېدنه، رازراز کېدنه، له يوې بڼې څخه په بله بڼه اوښتنه.

**تطهير** (tathír) نر.م (ج. تطهيرونه) ولنه، پاکونه، مينځنه، پېچونه، ستره کونه.

**تظاهر** (tazāhór) نر.م. ۱) ځان ښودنه، خود نمايي ۲) مرسته کونه؛ ۳) ملاتړ کول.

**تعادل** (taʕādól) نر.م. (ج. تعادلونه) سره انډول کېدنه، يو له بله سره برابرېدنه.

**تعارض** (taʕāróz) نر.م. (ج. تعارضات) تېری کونه سره لگېدل، سره نښتل، بريد کول.

**تعارف** (taʕāróf) نر.م. ۱) پېژندگلوي، اشنا کېدنه؛ ۲) يو بل ته سره سوغات ورکونه.

**تعاقل** (taʕāqól) نر.م. ځان هوښيار گڼل، ځان پوه او هوښيار ښکاره کونه.

**تعالی** (taʕālā́) ص. نر.م. لوی، ستر، اوچت، د لوړې مرتبې خاوند.

**تعامل** (taʕāmól) نر.م. (ج. تعاملونه) ۱) رسم و رواج، دود دستور، رواج، عرف؛ ۲) يو پر بل تأثير کول، متقابل عمل، متقابله اغېزه.

**تعاون** (taʕāwón) نر.م. مرسته، مدد، متقابل کومک، لاس نيوی.

**تعاوني** (taʕāwoní) ص. نب. د مرستې، د کومک، دگډې مرستې، د لاس نيوي.

**تعاهد** (taʕāhód) نر.م. (ج. تعهدونه) يو له بله وعده، قول، ژمنه يا ژبه کونه.

**تعبير** (taʕbír) نر.م. ۱) مطلب بيانونه، خپل مقصد په عباراتو بيانونه؛ ۲) دخوب مانا.

**تعبيرول** (taʕbirawə́l) مص. مت. ۱) بيانول، مطلب او مقصد بيانول؛ ۲) د خوب مانا کول.

**تعبیوي** (taɤbiyawí) ص.نب. د سمبالښت، د تیارۍ او چارې تاکتیکي، تکتیکي.

**تعبیه** (taɤbiyá) ښځ.م. (ج. تعبیې) تابیا، چاره، سمبالونه، چمتو کونه، تیارونه، تیاری نیونه، برابرونه(د پوځ)، تکتیک.

**تعجب** (taɤajúb) نر.م. حیرانتیا، حیرانېدنه.

**تعجیل** (taɤjíl) نر.م. (ج. تعجیلونه) تلوار، بیړه، تادي او تلوسه کونه.

**تعداد** (taɤdád) نر.م. ۱) شمېر، څومره والی؛ ۲) اندازه، حد.

**تعدی** (taɤdá) ښځ.م. تېری، زور، ظلم، زیاتی.

**تعدیل** (taɤdíl) نر.م. ۱) سمونه، اړونه، اصلاح کونه، بدلونه؛ ۲) دوه شیان سره برابرونه.

**تعذیب** (taɤzíb) نر.م. ربړ، تنګسه، کړونه، ځورونه، ربړونه، عذابونه.

**تعذیبول** (taɤzibawə́l) مص.مت. ربړول، تنګول، ځورول، کړول، عذابول، تکلیفول.

**تعرض** (taɤaróz) نر.م. (ج. تعرضونه) برید، غوټه، حمله، یرغل، تېری.

**تعرضي** (taɤarozí) ص. نب. د تعرض، له برید، تېري، یرغل او تعرض سره تړلی.

**تعرف** (taɤaróf) نر.م. پېژندګلوي، یو تر بله پېژندل، بلدتیا، سره معرفي کېدنه.

**تعرفه** (taɤrofá) ښځ.م. (ج. تعرفې) ۱) پېژند پاڼه، شهرت پاڼه، د پیسو د تحویلولو سند، د معرفي کېدو پاڼه؛ ۲) الېست، فهرست.

**تعریف** (taɤríf) نر.م. (ج. تعریفونه) ۱) تشریح، مطلب بیانونه؛ ۲) ورپېژندنه، پېژندګلوي؛ ۳) صفت، ستاینه، مدح.

**تعزیت** (taɤziyát) نر.م. تعزیه، تسلي ورکونه، خواخوږي، غم شریکي، همدردي ښکاره کونه.

**تعزیر** (taɤzír) نر.م. (ج. تعزیرونه) رټنه، غندنه، ملامتونه.

**تعزیرول** (taɤzirawə́l) مص. مت. غندل، رټل، ملامتول.

**تعزیه** (taɤziyá) ښځ.م. (ج.تعزیې) وګ. تعزیت.

**تعصب** (taɤ(a)súb) نر.م. ۱) طرفداري، پلوي؛ ۲) کرکه، کینه، بغض.

**تعطیل** (taɤtíl) نر.م. ۱) له کاره لاس اخیستنه؛ ۲) د کار ځنډېدنه؛ ۳) رخصتي.

**تعظیم** (taɤzím) نر.م. ۱) لویونه، سترونه؛ ۲) درناوی، درنښت، احترام، لاس په نامه.

**تعفن** (taɤafún) نر.م. ۱) تووږم، تسوږم، ووږم، خسا بوی؛ ۲) بدبویه کېدنه، بوینا ک کېدنه.

**تعقل** (taɤaqól) نر.م. ۱) هوښیارتیا پیدا کونه؛ ۲) د عقل له مخې په کوم کار کې غور کونه.

**تعقلي** (taɤaqolí) ص. نب. ۱) په هوښیارتیا، په شعوري توګه؛ ۲) د پوهې، د فکر، د عقل.

**تعقیب** (taɤqíb) نر.م. (ج. تعقیبونه) ۱) ورپسې کېدنه، څار، څارېدنه؛ ۲) پیروي، پسې تلنه.

**تعقیم** (taɤqím) نر.م. ۱) شنډونه، خنثی کونه؛ ۲) په لازمو وسایلو سره مکروب وژنه.

**تعلق** (taɤalúq) نر.م. ۱) ځوړندېدنه؛ ۲) اړیکه، پیوستون؛ ۳) تار، خپلوي؛ ٤) مینه، اشنایي.

**تعلیق** (taɤlíq) نر.م. ځړونه، ځوړندونه، یو شی په بل شي پورې ځوړندونه.

**تعلل** (taɤalúl) نر.م. ۱) بانه کونه، بهانه کونه؛ ۲) علت لټونه، علت پیدا کونه.

**تعلیم** (taɤlím) نر.م. علم حاصلونه، زده کړه، ښوونه ښودنه، لولونه، زده کونه، درس ورکونه.

**تعلیمي** (taɤlimí) ص.نب. د تعلیم، د زده کړې، د ښوونې، د زده کونې، تعلیم ته منسوب.

**تعمق** (taʕamóq) نر.م. ځير کېدنه، ځيرېدنه، غور کونه، ګروېدنه او کنجکاوي کونه.

**تعمير** (taʕmír) نر.م. ۱) ودانونه، اباداونه؛ ۲) وداني، کور، مېنه؛ ۳) مفيد کار.

**تعميراتي** (taʕmirātí) ص. نب. ۱) د تعمير، ودانيز؛ ۲) د آبادۍ، د جوړونې؛ ۳) د کور، د مېنې.

**تعميل** (taʕmíl) نر.م. عملي کول، عمل کونه، حکم منته، فرمانبرداري، ترسره کونه.

**تعميم** (taʕmím) نر.م. عامونه، رواجونه، خپرونه، نيتونه، مشهورونه، خورونه.

**تعويذ** (taʕwíz) نر.م. ۱) پناورکونه؛ ۲) هغه دعا ګانې چې په کاغذ کې ليکل کېږي او په غاړه اچول کېږي؛ ۳) يو ډول ګانه ده.

**تعويض** (taʕwíz) نر.م. بدلونه، عوض کونه، عوض ورکونه، بدل ورکونه، اليشونه.

**تعويق** (taʕwíq) نر.م. شاته اچونه، ځنډونه، وروسته اچونه، ځنډ، ټالونه، ځنډونه.

**تعهد** (taʕahód) نر.م. ۱) ژمنه، لوز، وعده، قول؛ ۲) پر غاړه اخيستنه، پر ذمه اخستنه.

**تعيين** (taʕiín) نر.م. ټاکنه، مقررونه، ټاکل کېدنه، غوره کېدنه، انتخاب کېدنه.

**تعيينات** (taʕiināt) نر.م.ج. مقررۍ، ټاکنې، انتخابېدنې، غوره کېدنې.

**تغ** (taǧ) نر.م. اوسپنيز خولۍ (توپۍ).

**تغاده** (taǧādá) ښځ.م. (ج. تغادې) اصرار کونه، ټينګار کول، متې کېدنه، شله کېدنه، خرې کېدنه.

**تغار** (taǧā́r) نر.م. تغاره، لوی خاورين لوښی.

**تغارک** (taǧārák) نر.م. استسقاء، د استسقاء ناروغي، توشنک.

**تغاری** (taǧāráy) ص. نر.م. ۱) خېټور، خېټو، ګېډور؛ ۲) جسل، د استسقاء په ناروغي اخته، جلوهلی.

**تغدری** (taǧdáray) نر.م. (ج. تغدري) ښاری، د غره ښاری؛ يو ډول غرنی مرغه دی.

**تغذيه** (taǧziyá) ښځ.م. خواړه ورکونه يا رسونه، مړونه، خواړه جذبونه.

**تغمه** (taǧmá) ښځ.م. ۱) دلبنستې يا قمچينې داغ، په بدن د متروکې يا لبنستې وهلو داغ؛ ۲) نښه، تغمه؛ ۳) نشان، نښان، مډال.

**تغند** (taǧánd) ق. بغند، بېړند، په بيړه او تېزۍ تېرېدونکی، په چټکۍ تېرېدونکی.

**تغندی** (taǧandáy) ښځ.م.ج. کاسه، لوښی، المونيمي کاسه.

**تغنول** (taǧnawə́l) مص. مت. وريتول، تغنول، سره کول او کباب ول يا په اور کې وريتول.

**تغو** (tuǧū́) نر.م. انځر، اينځر، د انځر دانې.

**تغول** (taǧawə́l) مص. مت. ۱) په خړا بو غوړيو کې سره کول؛ ۲) غوړځول، لړې تريل.

**تغيير** (taǧiír) نر.م. (ج. تغييرونه، تغييرات) بدلون، اوښتنه، له يوه حال بل ته اوړېدنه.

**تغييرول** (taǧiirawə́l) مص. مت. بدلول، اړول، له يوه حال بل ته راوستل.

**تفاوت** (tafāwót) نر.م. (ج. تفاوتونه) ۱) توپير، فرق؛ ۲) ارزښت، اهميت.

**تفاهم** (tafāhóm) نر.م. درک کونه، يو د بل په مقصد پوهېدنه، پوهاوی.

**تفتيش** (taftíš) نر.م. (ج. تفتيشونه) ۱) لټونه، کتنه، ۲) پلټونکی، لټوونکی.

**تفرقه** (tafroqá) ښځ.م. بېلونه، جدايي، بې اتفاقي، درز، د دوو شيانو ترمنځ توپير.

تفریح (tafríh) ښـځ.م. ۱) خـوښي، ساتېـري؛ ۲) هواخوري، سیل؛ ۳) سیاله، استراحت.

تفریط (tafrít) نر.م. ۱) کمي، لـږوالی، کمښت؛ ۲) لټي، تنبلي؛ ۳) د مال ضایع کول او تلفول.

تفریق (tafríq) نر.م ۱) تیتونه، بېلونه، جلا کونه؛ ۲) توپیر، تفاوت؛ ۳) اختلاف؛ ٤) (ر.ي. منفي کونه، کمونه.

تفسیر (tafsír) نر.م ۱) تشریح، وضاحت، بیانونه، څېړنه، ښکاره کـونه، د کلام مـانا بیانونه او شرح کونه.

تفسیرول (tafsirawә́l) مص. مت. ۱) تشریح کول، بیانول، څېړل، څـرگندول، دخبرې مانا بیانول؛ ۲) د قرآن کریم د آیتونو شرح کول.

تفصیل (tafsíl) نـر.م. ۱) جـلا کـونه، کتاب په څپرکـو وېشنه؛ ۲) د یوه مطلب سپړنه او اوږدونه.

تفصیلي (tafsilí) ص.نـب. اوږد او مشـرح، سپړلی.

تفضیل (fafzíl) نر.م. لوړ گڼنه، یو شـوک پر بل چا غوره او لوړ گڼنه، فضیلت ورکونه.

تفکر (tafakór) نر.م. (ج. تفکرونه) فکـر کـونه، سوچ کونه، اند کونه.

تفکیک (tafkík) نر.م. ۱) بېلـونه، جلا کـونه، جدا کونه؛ ۲) خوشي کونه، خلاصونه.

تفنن (tafanón) نر.م. ۱) ډول ډول کـېدنه؛ ۲) یو کار یا یو هنر په بېلـو بېلـو طـرزونو ترسرونه؛ ۳) ساتېري، تفریح، عیاشي.

تفوق (tafawóq) نر.م. ۱) برتري او لوړوالي غوښتنه ،لوړتیا غوښتنه؛ ۲) برتري، لوړېدنه.

تفویض (tafwíz) نر.م. سپارنه، ورسپارنه، کار یا یو شی د چا تر غاړې کونه.

تفهیم (tafhím) نـر.م. پوهـونه، پوهـول، سر ور خلاصونه، درک کونه.

تقابل (taqāból) نر.م. ۱) مقابله، یو بل ته مخامخ درېدنه، مخامخ کېدنه؛ ۲) په ادبي فنونو کې شاعر په خپل کلام کې داسې کلیمې راوړي چې له بلې سره متقابلې وي، لکه تور او سپین.

تقاضا (taqāzā́) ښځ.م. (ج. تقاضاوې، تقاضې، تقاضاگانې) غوښتنه، بیا غوښتنه، طلب.

تقاعد (taqāsúd) نـر.م. ۱) کورناستنه، له کاره ایسته کېدنه؛ ۲) دغسې چـاته په کـور معاش ورکول (تقاعدي حقوق).

تقاوي (taqāwí) ښځ.م. امـدادي پیسې یا تخم، هغه پیسې یا تخم چې د حکومت یا د ځمکې د مالک له خوا بزگرانو ته د مرستې په ډول ورکول کېږي.

تقبیح (taqbíh) ښځ.م. غندنه، بدونـه، بد ویل، د یو چا د بد او ناوړه کار غندنه.

تقدس (taqadós) نـر.م. ۱) پاکـېدنه، له عیبه پاکېدنه؛ ۲) سپېڅلوالی، پرهېزگاري.

تقدم (taqadóm) نر.م. مخکېوالی، وراندېتوب، وړاندې کېدل، له نورو مخکېوالی.

تقدیر (taqdír) نر.م. ۱) اندازه، مېچ نیونه، کچه نیونه؛ ۲) اټکل؛ ۳) ستایل؛ ٤) برخلیک، د خدای(ج) قضا او فرمان؛ ٥) برخه، قسمت.

تقدیر نامه (taqdirnāmá) ښځ.م. هغه لیک چې کوم مامورته (د دولت له خوا) د هغه د ښوکړنو په مقابل کې ورکول کېږي.

تقدیرول (taqdirawә́l) مص. مت. قدرول، ستایل، قدر کول، دروند گڼل، تقدیر ورکول.

تقدیري (taqdirí) ص. نـب. ۱) ازلي، ابدي، په تندي کې لیکل شوی؛ ۲) ناڅاپي، نابېره،

**تقدیس** (taqdís) نر.م. پاکوالی، سپېڅلتیا، پاکي.

**تقدیم** (taqdím) نر.م. وړاندې کونه، مخکې کونه، وړاندې کېدنه، لاس ته ورسپارنه.

**تقر** (taqír) نر.م. دقره قل د پوستکي یو ډول.

**تقرب** (taqarúb) نر.م. ۱) نږدېوالی، نږدېتوب، نږدې کېدنه، نږدېوالی؛ ۲) خپلوي، خپښي.

**تقرر** (taqarór) نر.م. مقررېدنه، ټاکل کېدنه، ټاکنه، مقررونه، لګونه، ګومارل کېدل.

**تقرري** (taqarorí) ص. ښځ.م. د مقررېدنې د ټاکل کېدنې، د ټاکنې، د لګونې.

**تقریب** (taqríb) نر.م. (ج. تقریبونه) نزدیکت، نږدېوالی، نږدېتوب، نږدې کېدنه.

**تقریباً** (taqribán) ق. تخمیناً، نږدې، کابو، قابو، په اټکلي ډول.

**تقریر** (taqrír) نر.م. (ج. تقریرونه) وینا، بیانیه، خبرې؛ ۲) اقرار کول، څوک په اقرار راوستل.

**تقریر کوونکی** (taqrirkawúnkay) فا. نر.م. وینا کوونکی، خبرې کوونکی، ویندوی.

**تقریري** (taqrirí) ص. نب. زباني، شفاهي، په خوله، د تحریر ضد.

**تقریض** (taqríz) اسم، نر.م. پرېکول، قطع کول، شعر ویل، د چا ستاینه یا بد ویل.

**تقریظ** (taqríz) نر.م. ۱) ستاینه، مدح کونه؛ ۲) نظر څرګندونه، نظریه، رایه، تبصره، د چا په لیکنه خپل نظر ښکاره کونه؛ ۳) کره کتنه، انتقاد.

**تقسیم** (taqsím) نر.م. ۱) وېش، وېشنه، ونډ، ونډه، توزیع، برخه؛ ۲) ډلبندي.

**تقسیمونه** (taqsimawána) ښځ.م ۱) وېشنه، برخې برخ ... ریاضي کې یو عدد پر ... د باندې وېشنه.

**تقصیر** (taqsír) نر.م. (ج. تقصیرونه) ۱) خطا، قصور، ګناه؛ ۲) کمی.

**تقطیر** (taqtír) نر.م. ۱) څاڅکی څاڅکی کونه، څڅونه؛ ۲) ک. په تودولو جامدات یا مایعات په غاز یا بخار بدلول.

**تقطیع** (taqtís) ښځ.م. ۱) ټوټې ټوټې کول، برخې برخې کول؛ عز. د عروضو پر اجزا باندې د شعر تجزیه کونه او سنجونه.

**تقلب** (taqalób) نر.م. ۱) اوړېدنه، تغییر؛ ۲) درغلي، دوکه، غولونه، ټګي.

**تقلبي** (taqalobí) ص. نب. ۱) کلپ، غلط؛ ۲) د تقلب، د غولونې، د ټګۍ، برګی.

**تقلید** (taqlíd) نر.م. (ج. تقلیدونه) ۱) پېښې، په پټو سترګو په چا پسې تلنه؛ ۲) پیروي، د بل چا د کار له مخې کوم کار اجرا کول.

**تقلیدي** (taqlidí) ص. نب. د تقلید، د پیروی، د پېښو، له تقلید سره تړلی.

**تقلیل** (taqlíl) نر.م. کمونه، لږونه، رابښکته کونه، راکوزونه.

**تقنین** (taqnín) نر.م. قانون لیکنه، قانون وضع کونه، قانون ټاکنه، لار جوړونه.

**تقنیني** (taqniní) ص. نب. قانوني، د قانون، له قانون سره تړلی، پر قانون برابر.

**تقوا** (taqwā) ښځ.م. پرهېزګاري، له خدایه وېرېدنه او له ګناهونو ځان ژغورنه.

**تقویت** (taqwiyát) نر.م. قوت ورکونه، قوي کونه، پیاوړي کول.

**تقویم** (taqwím) نر.م. ۱) جنتري، کلیز؛ ۲) بیه کونه، بیعه اېښودنه؛ ۳) کږوالی ایستنه.

**تقویه** (taqwiyá) ښځ.م. (ج. تقویې) ۱) قوي کونه، قوت ورکونه؛ ۲) ټینګونه، کلکونه.

**تک**[1] (tak) اد. ۱) خالص، بېخي، له يوه سره، بالکل، د رنګ د زياتوالي د ښودلو لپاره راځي - تک سپين؛ ۲) نر.م. ملغ؛ ۳) اټکل، اندازه، تخمين؛ ٤) تکړه، تيار.

**تک**[2] (tuk) نر.م. ۱) قافيه؛ ۲) بده خبره، سپکه خبره، فضوله خبره، چټي خبره.

**تکاره** (takāra) ښځ.م. (ج. تکارې) توکره، هوار او ښوی کانی.

**تکاثر** (takāsór) نر.م. ډېرښت، ډېروالی، زياتېدنه، ډېرېدنه، زياتوالی.

**تکاثف** (takāsóf) نر.م. ټينګېدنه، ګاټه کېدنه، خټه کېدنه، غليظېدنه.

**تکامل** (takāmól) نر.م. بشپړتوب، کاملېدنه، د بشپړتيا په لور تلنه.

**تکبر** (takabór) نر.م. کبر، غرور، لويي، ځان ښودنه لوی نفسي، ځان لوړ بلنه، کبر کونه.

**تکبير** (takbír) نر.م (ج. تکبيرونه) الله اکبر ويل، خدای پاک په لويي سره يادول.

**تکت** (takt) نر.م. بار، مېزان، بالاين.

**تکتکی** (taktakáy) نر.م. ۱) تکتکانی، د کوچنيانو يوه لوبه ده؛ ۲) هغه آله چې د هغه په وسيله د ژرندې له ناوه ګی څخه غله او دانې راتويږي.

**تکذيب** (takzíb) نر.م. دروغ ګڼنه، دروغجنونه، په چا پورې د دروغو تړنه.

**تکذيبول** (takzibawál) مص.مت. دروغجنول، دروغ ګڼل، دروغ بلل، دروغ کول.

**تکرار** (takrā́r) نر.م. بياځلي، له سره کوم کار يا خبره کونه، يو عمل څو ځله سرته رسونه.

**تکراري** (takrārí) ص. نب. بياځلي، د تکرار، بيا بيا ويل شوی، بيا بيا راغلی.

**تکريم** (takrím) نر.م. خوږ او محترم ګڼنه، درنونه، قدرمن ګڼنه، ګران شمېرنه.

**تکړښت** (takṛáṣt) نر.م. ۱) تکړه والی، تکړه توب؛ ۲) سپورټ.

**تکړه** (tukṛá) ښځ.م. درغن، هوار کانی، ښوی کانی، هوار کانی، نری کانی، تکاره.

**تکړه** (takṛá) ص.نب. ۱) مضبوط، کلک، چست؛ ۲) فعال، جدي؛ ۳) قابل، لايق؛ ٤) قوي.

**تکړه توب** (takṛatób) نر.م. ۱) تکړه والی، تندرستي؛ ۲) نرتوب؛ ۳) هوښيارتوب.

**تکړی** (tikṛay) نر.م. (ج. تکړي) توټه، پيوند، تيکری، توک، د جامو پيوند.

**تکفير** (takfír) نر.م. ۱) پټونه؛ ۲) کفاره ورکول؛ ۳) کافرونه، کافر ګڼنه.

**تکفين** (takfín) نر.م. مړي ته کفن ورکونه.

**تکل** (takál) نر.م. (ج. تکلونه) ۱) د سفر اراده، د سفر نيت؛ ۲) نيت، عزم، اراده، هوډ، قصد؛ ۳) دهنري نثر يو ډول دی.

**تک لاسی** (taklāsay) ص. نر.م. (ج. تک لاسي) چست وچالاک، چابک، مستعد.

**تکلم** (takalóm) نر.م. ۱) ګړېدنه، خبرې کونه؛ ۲) وينا، خبرې، خبرې اترې، غږېدا.

**تکليف** (taklíf) نر.م. ۱) ژمن کول، مکلف کول، زيار، خواري، ربړ، کړاو؛ ۲) رنځ، ناروغتيا.

**تکميل** (takmíl) نر.م. بشپړونه، پوره کونه، سرته رسونه، مکملونه، پای ته رسونه.

**تکنيک** (takník) نر.م. و ګ. تخنيک.

**تکون** (tikún) نر.م. درې ګوټه، درې ګوټيز، درې پريزه، مثلث.

**تکه**[1] (tiká) ښځ.م. ۱) بوټی، بې هډوکي غوښه؛ ۲) توکر؛ ۳) تېج، تيکی، پوښ، چړتون.

**تکه**[۲] (taká) نر.م. ۱) مېنده، هېنده، هغه وز یا پسه چې خصي شوی نه وي؛ ۲) آبستنېدنوی، کلي ونډا، کاکېشکی، یو ډول لوبه ده.

**تکه تیارکه** (takatyāráka) ښځ.م. تېزي، چابکي، چالاکي، عجله، تلوار، بېړه.

**تکی** (takáy) ښځ.م ۱) غوږ نيونه، په دقت اورېدل شک کونه؛ ۲) جوړه، جفت.

**تکیا** (takyā́) ښځ.م. تکیه، ډاډ، اسره.

**تکېدل** (tukedə́l) مص.ل. توکېدل، شين کېدل، نبات را زرغونېدل.

**تکیه** (takyá) ښځ.م ۱) فقير خانه؛ ۲) د ملنګانو، چرسیانو بانډه؛ ۳) باور، ډاډ؛ ٤) بالښت، پښتی، سرو یې دي.

**تکیه کول** (takyakawə́l) مص.مت. باور کول، یقین کول، ډاډ لرل؛ ۲) ډډه وهل.

**تګ** (tag) نر.م. رفتار، چلند، تلنه، تله، یون.

**تګا** (tigā́) ښځ.م. (ج. تګاوې) طاقت، حوصله، توان، همت.

**تګړی** (tagṛáy) نر.م (ج. تګړي) تګړې، تيګړې، توګړې، د زرې جامې توته.

**تګلار** (taglā́r) ښځ.م. خط مشي، اساسنامه.

**تګلوری** (taglóray) نر.م. کړنلاره، مسير، خط مشي.

**تګلی** (tagláy) نر.م. (ج. تګلي) بيابان، ډاګ.

**تګی** (tagáy) نر.م. د درمنده بېخ، د درمنده د رشې له اخېستلو وروسته په درمنده کې پاتې غله.

**تګ و تاز** (tagotā́z) نر.م. تګ، تلل، رفتار، تلنه، چلند.

**تګ ودو** (tagodáw) نر.م. منډې، ترړې، هڅه.

**تګی** (tagáy) ښځ.م. ۱) تبی، تبغنه، هغه ډبره چې ډوډۍ پر پخوي؛ ۲) تخته، لوحه.

**تګېر** (tagér) نر.م. د اوړو د وېشلو بند.

**تل** (tal) ق. ۱) مدام، همېش؛ ۲) نر.م. ژوروالی، بېخ؛ ۲) تل؛ ۳) هغه خيرې چې د تېلو يا اوړو په بېخ کې پاتې شي؛ ٤) ضايع؛ ٥) شګلوره مېره، د ځمکې پلنه تخته؛ ٦) لوری، خوا.

**تلا** (talā́) ښځ.م. د کوټې د غولي د لوړولو او جګولو لپاره چې کومه دوکانچه جوړه شي.

**تلاتوب** (talātób) نر.م. ۱) ناقراري، ناکراري، نا ارامي؛ ۲) جوش، هيجان.

**تلازه** (talāzá) ښځ.م. (ج. تلازې) ترازه، ترېشه، کلی، تيلم، قاش، دهندوانې یا... ترازه.

**تلاږه** (tlāẓá) ښځ.م. (ج. تلاږې) چيرې، چيرړه، ريتاړه، اوږده څيره، درخت يوه توټه.

**تلاش** (talā́š) نر.م. ۱) طلب، غوښتنه، لټونه، هڅه؛ ۲) بيړه، تلوار.

**تلاشي** (talā́ši) ص. نب. ۱) لټون، پلټنه، کتنه، لټونه؛ ۲) د تالاشي ځای، د پلټنې ځای.

**تلافي** (talā́fi) ښځ.م. بدله، عوض، جبران.

**تلانګه** (talāngá) ښځ.م. (ج. تلانګې) انعکاس، انګی، ازانګه.

**تلاو** (talā́w) نر.م. (ج. تلاونه) د اوبو ډنډ، تالاو، ډنډ، حوض، جوړ، تربل.

**تلاوت** (tilāwát) نر.م. ۱) لوستنه، وينه، د قرآن شريف وظيفه، د قرآن مجيد لوستنه.

**تلاوه** (tlāwá) ښځ.م. (ج. تلاوې) ۱) زور، زياتی، جور و جفا، ظلم؛ ۲) تنبيه، وېښونه.

**تلاوی** (talāwáy) نر.م. تالاوی، هغه کړايي چې د ګنيو خام شربت پکې تولېږي.

**تلبر** (talbár) نر.م. ۱) لوی ښانک؛ ۲) تربال، په لوی ښانک کې د پخو وريجو د منځ جوغړه، دنډوکی.

**تلبري** (talbarí) ص. نب ۱) خپتور، نسور، خپتو؛ ۲) لنگري، درد بيمار.

**تلبهاندی** (təlbahā́nday) همېشه بهېدونکی، تل بهېدونکی.

**تلبيس** (talbís) نر.م. ۱) پټونه، د حقيقت پټونه؛ ۲) خپل عيب له نورو پټونه؛ ۳) چل، دوکه؛ ٤) مشابهت، ورته والی.

**تلپاتې** (təlpā́te) تلپاېند، تلژوندی، مدامی، جاويدان، همېشنی، تل تر تله.

**تل پچه** (talpača) ښځ.م. د بام چڅه، د بام بلې، د بام وزر، سرېندی، د دېوال پرچال.

**تلپې غاښونه** (talpəyğāṣū́na) نر.ج. د سل کلنې غاښونه، د تولپې غاښونه.

**تلتاند** (təltā́nd) همېشه تازه، تل ښېراز.

**تل تر تله** (təltartála) ق. مدام، همېشه، ابدي.

**تلتک** (t(a,i)lták) نر.م. (ج. تلتکونه) برستن، ورستن، تولتک، شيرک، کنځو، برستنه.

**تلتيا** (təltyá) دوام، استمرار، همېشه والی.

**تلچمتو** (təlčamtū́) ص. همېشه تيار، تيارسئ.

**تلځلاند** (təlǰalā́nd) ص. همېشه ځلېدونکی، تلبل.

**تلڅپاند** (təlcapā́nd) ص. همېشه په څپو، تل موجزن.

**تلخان** (talxā́n) نر.م. ج. مرمرې، ستوان، ستو، د غنمو او توتو مېده شوې څيز.

**تلخه** (tálxa) تلخه، د مچيو، غومبسو د شرلو او له ځانه د لېرې کولو اواز.

**تلخيص** (talxís) نر.م. خلاصه کونه، لنډونه، لنډيز.

**تلذذ** (talazúz) نر.م. خوند اخيستنه؛ نوندورتوب، خوند لرنه.

**تلزرغون** (təlzarğū́n) ص. تلشين، تل سمسور.

**تلژراند** (təlžaṛā́nd) ص. همېشه ژړاند.

**تلژواند** (təlžwā́nd) ص. همېشه ژوندی.

**تلسمسور** (təlsamsúr) ص. و.گ.: تلشين.

**تلښېراز** (talṣerā́z) ص. و.گ.: تلشين.

**تلغاک** (talğā́k) نر.م. ۱) الغو، شور، غږو؛ ۲) باد و باران، توپان.

**تلف** (taláf) نر.م. (ج. تلفات) برباديدنه، له منځه تلنه، ضايع کېدنه؛ ۲) ورکاوی ۳) مړ، هلاک.

**تلفظ** (talafóz) نر.م. (ج. تلفظونه) ۱) وينګ، خبرې کونه، بيان کونه؛ ۲) لفظ ادا کونه، د وينا طرز، د کليمې د سموادا کولو دود.

**تلفول** (talafawə́l) مص.مت. ۱) ضايع کول، له منځه وړل؛ ۲) مصرفول؛ ۲) هلاکول، وژل.

**تلقي** (talaqí) ښځ.م. ۱) ليدنه کتنه، ملاقات کونه؛ ۲) تعبير کونه، تصور کونه؛ ۳) قبلونه، مننه؛ ٤) زده کونه.

**تلقين** (talqín) نر.م. ۱) پوهونه، خبرې وروزده کونه؛ ۲) په ټينګه وينا، نصيحت، وعظ؛ ۳) څوک خبرو ته اړ ايستنه.

**تلکه** (taláka) ښځ.م. (ج. تلکې) تلک، اره کې، لټ، پړته، کيکرې.

**تلل** [1] (tləl) مص. ل. تګ کول، يون کول، حرکت کول.

**تلل** [2] (talál) مص. مت. تولول، وزن کول.

**تلمتی** (tulumtáy) نر.م. و.گ.: ترمتی.

**تلميح** (talmíh) ښځ.م. ۱) کوم شي ته کتنه او ګوته نيونه؛ ۲) بد. په شعر کې کومې تاريخي کيسې يا متل ته اشاره کونه.

**تلنځ** (tlanǰ) نر.م. و.گ.: تلنځی.

**تلنځی** (tlanǰáy) نر.م. لاره، د تګ لاره، ګذرګاه.

**تلنګ** (taléng) نر.م. ۱) تولونه، تول کونه؛ ۲) مو. په دکن کې تلنګانې ته منسوب د یوه راګ نوم

**تلنګي** (talangí) ښځ.م. تلی، د موچنې (پنې) د بوټ او د څپلی تلی.

**تلنه**[1] (tlána) ښځ.م. تګ، یون، تلنګ، تله.

**تلنه**[2] (talána) ښځ.م. تولونه، وزن کونه، تلنګ.

**تلوار** (talwár) نر.م ۱) بیړه، تونديي، جلتي، شتاب؛ ۲) ناقراري، ناکراري، بې صبري.

**تلوار ګرندی** (talwārgrandáy) ص. نر.م. ۱) تلواري، بیړندی، بیړګندی، بیړنی؛ ۲) بې صبره، ناکراره، نا ارامه، تلولی.

**تلواري** (tallwārí) ص. و ګ.: تلوارګرندی.

**تلوترک** (talotrák) نر.م ناکراري، بې طاقتي، بېتابي، نارامي، تلوسه، وارخطایي.

**تلوسناک** (talwasnák) ص. تلوسه لرونکی، لېوال، بېتاب.

**تلوسناکي** (talwasnākí) تلوسه لرنه، لېوالتیا، بېتابي.

**تلوسه** (talwasá) ښځ.م. ۱) بېتابي، هڅه، هیله، ارزو، بیړه، تلوترک، تلوار؛ ۲) سودا.

**تلول** (talawə́l) مص.مت. ۱) تویول، خالي کول؛ ۲) غورځول، پرځول؛ ۳) النېیل، په غورو کې سره کول؛ ۴) نر.م. وارخطایي، تلوله.

**تلوله** (talwalá) ښځ.م. وارخطایي، پرېشاني.

**تلولی** (talawə́lay) مف.نر.م ۱) الېیلی، په غورو کې سور کړی شوی؛ ۲) ص. نر.م. پرېشانه.

**تلون**[1] (tlun) نر.م. تګ، تلنه، چلند، یون، تله.

**تلون**[2] (talū́n) نر.م. وزن، تول، تلنه، وزن کونه.

**تلونی**[1] (tlū́nay) فا. نر.م ۱) تګ کوونکی، تلونکی، یون کوونکی؛ ۲) فاني، ناپایند، بې پایښته، ناپاتي.

**تلونی**[2] (talū́nay) فا. نر.م. تول کوونکی، وزن کوونکی، تلونکی، تول والا.

**تله**[1] (tla) نر.ج. تګ، چلند، تلل، یون.

**تله**[2] (talá) ښځ.م. (ج. تلې) ۱) ترازو، د وزن کولو آله؛ ۲) تلی، د پښې لاندنۍ برخه.

**تلی** (taláy) مف. نر.م. (ج. تلي) ۱) تللی، له لاسه وتلی، ضایع شوی؛ ۲) نر.م. د پښې لاندنۍ؛ ۳) د پښې، بوټ لاندېنۍ برخه؛ ۴) د کوټې غولی، د کوټې مخ؛ ۵) کپه، تاک، په ورغوي کې ځاییدونکی؛ ۶) د درمند ځای؛ ۷) د نس لاندنۍ برخه.

**تلې** (talé) ښځ.م. ۱) د کټ لنګه؛ ۲) څو ستوري دي چې په کتار کې یو تر بل لاندې وي. پر دغو ستورو وخت معلوموي.

**تلیاد** (təlyā́d) ص. همېشنی یاد، تلپاتې یاد.

**تلي پاتي** (talipātí) ښځ.م.و ګ.: تېلي پاتي.

**تلې پټ** (talepáṭ) نر.م. د تلې پله، د تلې چاړی، د تلې یوه خوا، د ترازو یوه پله.

**تلېدل** (taledə́l) مص. ل. ۱) په غوړو کې سره کېدل؛ ۲) تویېدل، چپه کېدل.

**تلیز** (təlíz) نر.م. تلوالی، همېشه توب، تلتوب.

**تلیسک** (talisák) نر.م. د انګورو ګونګی، ګونګورکی، د انګورو کوچنی وښکالی یا ووړی.

**تلین** (tlin) نر.م. تلینه، د مېږي کال، د کال پوره کېدنه.

**تم** (tam) ق. ۱) ایسار، معطل، ځنډني؛ ۲) ختم، تمام؛ ۳) مضبوط، داده؛ ۴) پاتې، راباندي؛ ۵) نر.م. تبر، تبرګی.

**تماټر** (tamāṭár) نر.م.ج. تماټر، رومي بانجان.

**تماس** (tamā́s) نر.م. ۱) سره موښتل، سره لګېدل، بلودنه؛ ۲) ارتباط، اړیکه، رابطه.

**تماسک** (tamāsúk) نـر.م. ځـان ژغورنه، ځان ساتنه، ځان گوښه کونه.

**تماشا** (tamāšā́) ښځ.م. (ج. تماشاوې) تماشـه، ننداره، ليدل کتل.

**تماشاچي** (tamāšāčí) فا.نر.م (ج. تماشاچيان) نندارچي، تماشه کوونکی، کتونکی.

**تماشگير** (tamāšagír) نـر.م. تماشه کوونکی، ننداره کوونکی، سيل کوونکی، نندارچي.

**تماشايي** (tamāšāyí) ص. نب. ۱) دتماشې، د ننداري؛ ۲) د خندا، د توکو، د مسخرو.

**تماغه** (tamāǧa) ښځ.م. ۱) توماغه، د ښکرمنې هغه خولۍ چې غـوړونه پکې پټوي؛ ۲) دباز د سر خولۍ، د بابښې خولۍ.

**تمام** (tamā́m) ق. ۱) بشپړ، پوره؛ ۲) غوند، ټول، گرد؛ ۳) ختم، کامل، سرته رسېدلی.

**تمامښت** (tamāmáṣt) نـر.م. خلاصی، ختمېدنه، پوره کېدنه، تماموالی، تمامتوب، تمامتيا.

**تمامول** (tamāmawál) مـص. مـت. خلاصـول، بشپړول، پوره کول، ختمول.

**تمامېدل** (tamamedə́l) مـص.ل. خـلاصېـدل، بشپړېدل، سرته رسـېدل، ختمېدل؛ ۲) ببخي مصرفېدل.

**تمانچه** (tamānčá) ښځ.م. ۱) تومـانچه، تماچه، تومنچه؛ ۲) د کلالانو د کار لرگی.

**تمايل** (tamāyól) نر.م. لېوالتيا، ميل درلـودنه، علاقه ښکاره کونه، رغبت درلودنه.

**تمب** (tamb) نر.م. (ج. تمبونه) د خېمې هغه ځـای چې تمبو پکې درول کېږي.

**تمباکو** (tambākū́) نر.ج. يو ډول بوټی دی.

**تمبری** (tambaráy) نر.م. (ج. تمبري) هغـه تخته چې نانوايان پېړه وربانديې هواروي.

**تمبړی** (tambaṛáy) ښځ.م.ج. تمبگی، ...

**تمبکه** (tambáka) ښځ.م. تمبکه، د شاتو د مچيو کندو؛ ۲) پولۍ، لړمی، لړمې، تناکه.

**تمبگی** (tambagə́y) ښـځ.م.ج. تمبړی، تمبوگی، وړوکې دړه.

**تمبل** (tambə́l) نر.م. (ج. تمبلـونه) دريـه، چمبه، درياگی، دايره.

**تمبو** (tambū́) نر.م (ج. تمبوگان) ۱) خيمه، غته خيمه؛ ۲) د مرغيو نيولو لومه.

**تمبوخه** (tambúxa) ښځ.م. تـربوخه، بندې، او بدبويه هوا.

**تمبور** (tambū́r) نر.م. تنبور، دوتاري او چارتاري ته ورته د موسيقۍ سيمي آله ده.

**تمبورچي** (tambūrčí) نر.م. تمبور وهونکی.

**تمبوره** (tamburá) ښـځ.م. دنبوره، دمـبـوره، د افغانستان د موسيقۍ لرغونو او فـولکلوريکو آلو څخه ده.

**تمبوزک** (t(i,a)mbūzák) نـر.م. ۱) سـونټه، کتبېزی، خولـوابنـته؛ ۲) تـربوزک، ورسک، مول، مور، تيمبوزی؛ ۳) يو ډول توپک.

**تمبوزی** (tambuzáy) نر.م. تربوزک، مول، مور، اوربوزی، ترلی، ورسک، تيمبوزی.

**تمبوگی** (tambūgə́y) ښځ.م. و گ. تمبه گی.

**تمبه** (tambá) ښځ.م. (ج. تمبې) ۱) د دروازې يوه پله؛ ۲) سـتنـه، سـتن، مـتـه؛ ۳) تولی، ډلـه؛ ٤) ص. سرزوري، له خبرې نه اوښتونکی.

**تمبېدل** (tambedə́l) مص. ل. ۱) ستنېدل، شاته ستنېدل؛ ۲) لـه غـره کانی رالوېدل؛ ۳) دوکه کېدل؛ ٤) نگوښېدل؛ ٥) غورځېدل.

**تمبيزه** (tambizá) ښځ.م. (ج. تمبـيزې) تينکی، تمبيزی، تنکی، د پوزې د منځ هډوکی.

**تمبیزی** (tambizé) ښځ.م. مغ، څېره، سیکه.

**تمبواک** (tambewā́k) (ګر.) انسدادي غږونه.

**تمت** (tamát) ق. ختم، خــاتمه، پای، پوره شوی، سرته رسېدلی، تکمیل شوی.

**تم تری** (tamtaráy) ق. تري تم، ناڅاپه له سترګو ورکېدل، یو په یو ورکېده، ناڅاپه ورکېده.

**تمتع** (tamatóʔ) ښځ.م. ګټه اخیستل، ګټنه، فایده اوچتونه، ګټه، نفع.

**تم تم** (tamtám) ق. تمام، ختم، پوره.

**تمثال** (timsā́l) نر.م. ۱) تصویر، عکس، انځور، فوتو؛ ۲) څېــره، مجسمه؛ ۳) متــل راوړل؛ ٤) د پاچا فرمان.

**تمثیل** (tamsíl) نر.م ۱) متل تېرول، مثال راوړل؛ ۲) د یوه شي شــکل مجسمــونه؛ ۳) ډرامــه ښودنه، نمایش ورکونه.

**تمثیلول** (tamsilawә́l) مص.مت. ښودل، ښوول، نمایش ورکول، مثال راوړنه.

**تمجید** (tamjíd) نر.م. لوی بلل، ستایل، درنول، نمانځل؛ ۲) ګران او خوږ ګڼنه.

**تمچو** (tamačó) نر.م. وول، تمبه، تمبچو، تمبه.

**تمځای** (tamʒā́y) نر.م. (ج. تــمځایونه) د درېدو ځای، ایستګاه، د موټر د درېدلو ځای.

**تمځری** (tamʒә́ray) نر.م. (ج. تمځري) تنځری، یو ډول مرغۍ ده.

**تمځی** (tamʒā́y) و ګ.: تمځای.

**تمدن** (tamadón) نر.م. ۱) ښاري کېدنه، د ښاري ژوند او خوی اخیستنه؛ ۲) ټولنیز ژوند.

**تمدید** (tamdíd) نر.م. (ج. تمــدیدونه) اوږدونه، غځونه، وخت ورکونه.

**تمر** (tamár) نر.م. ۱) تمــل، انبله، خیجه، یو ډول یوناني دوا ده؛ ۲) دسترګو یو ډول ناروغي ده.

**تمرد** (tamaród) نر.م. سرغړونه، غاړه غړونه، نه منله، نه قبلونه، سرکشي، سرکشي کونه.

**تمرکز** (tamarkóz) نر.م. ځای نیونه، پر یو ځای یا په یوه نقــطه کې راټولېدنه.

**تمرین** (tamrín) نر.م. (ج. تمرینونه، تمرینات) مشق، تکــرار، تکــرارونه، بیا بیا وینه.

**تمساح** (timsā́h) نر.م. یو ډول بحري حیوان دی.

**تمسخر** (tamasxór) نر.م. مسخره کونه، ملنډې وهنه، ریشخندونه، پیشاره، پېچموزې کول.

**تمسق** (tamsóq) نر.م. اچو، یو ډول مېوه ده. سور پوستکی لري او د زرد آلو په اندازه ده.

**تمسک** (tamasók) نر.م ۱) حجت، سند، دستاوېز؛ ۲) نیونه، نیوکه.

**تمغه** (tamǧa) ښځ.م. مــډال، د عــزت نښــان، د بهادرۍ نښان.

**تمکه** (tamaka) ښځ.م. یو زهر او شهدې لرونکی بوټی.

**تم کېدل** (tamkedә́l) مص. ل. ۱) ایســارېدل، تمېدل؛ ۲) ختمېدل؛ ۳) ټینګېدل.

**تمکین** (tamkín) نر.م. ۱) درنښت، درونوالی؛ ۲) غاړه ایښودل، قبلونه؛ ۳) قوت ورکونه.

**تملق** (tamalúq) نر.م. خــوشامنده، خوشامندي، غوړه مالي، بوټ پاکي، چاپلوسي.

**تملیک** (tamlík) نر.م. مالکول، مالک کول، د ملکیت حق ورکول، د یوه شي خاوند کول.

**تملیک خط** (tamlikxát) نر.م. د ملکیت خط، هغه لیک چې د هغه پر اساس یو څوک د مــال، جایداد یا بل شي خاوند کېږي.

**تم مثلی** (tammaṣálay) انسدادي غږ.

**تمن**(۱) (tamā́n) نر.م. زمی، شخور، تمنیه، د اشخار بوټی، د اشخارو له بوټي څخه جوړه شوې پلنه چکۍ چې د صابون پر ځای کارېږي.

**تمن(۲)** (tumán) اسم، نر.م. (ج. تمنونه) ۱) ټولی، جماعت، ډله؛ ۲) دسلو سپرو یوه دسته، رساله، پلټن؛ ۳) شل.

**تمنا** (tamaná) ښځ.م. (ج. تمناوې، تمنیات) هیله، امید، غوښتنه.

**تموس** (tamús) نر.م. (ج. تموسونه) ۱) خمور، خاربښت، بخار؛ ۲) تموز، زیاته ګرمي.

**تمول** (tamawál) مص. مت. ۱) تم کول، درول، څنډول، ایسارول؛ ۲) نر.م. شتمنتوب، پانګه.

**تمویل** (tamwíl) نر.م. مال ورکول، د پیسو پر وسیله د کومې پروژې د چارو پرمخ بیونه.

**تمه** (táma) ښځ.م. (ج. تمې) طمع، لالچ، توقع، هیله، امید.

**تمهید** (tamhíd) نر.م. ۱) سریزه، شروع، پیل، عنوان؛ ۲) خپرونه، غورونه.

**تمېدل** (tamedál) مص. ل. تم کېدل، ایسارېدل، درېدل، ودرېدل، څنډېدل.

**تمیز** (tamíz) نر.م. ۱) بېلول؛ ۲) پېژندګلوي؛ ۳) توپیر؛ ٤) پوهه؛ ٥) ادب؛ ٦) قاعده، طریقه؛ ۷) جاج. قضایي لوړه محکمه ده.

**تن** (tan) نر.م. ۱) بدن، وجود، ځان، صورت، پیه، جسم، جثه؛ ۲) کس، بنده، نفر.

**تنا** (taná) ښځ.م تنا، د وریځو غرا، تالنده، تنو.

**تناب** (tanáb) نرم. تاو، پړی، رسی.

**تنابوره** (tanābúra) ښځ.م. (ج. تنابورې) هغه سوری دی چې په ختو یا شګو کې جوړ شوی وي او د پوکې په وسیله اواز پکې کېږي.

**تنازع** (tanāzóʼ) ښځ.م. (ج. تنازعات) ۱) بحث، شور، کړس؛ ۲) جګړه، جنګ، فساد.

**تنازع للبقا** (tanāzusılıbaqā) ښځ.م. ژوند جګړه، د ځان د بقا لپاره جنګ جګړه.

**تن اسان** (tanasán) ص. نرم. تن اسایه، ناراست، لټ، راحت طلبه، استراحت طلبه.

**تناسب** (tanāsób) نر.م. ۱) نسبت، رابطه؛ ۲) دول، برابري؛ ۳) بد. مراعات النظیر، تلفیق؛ ٤) د دوو نسبتونو ترمنځ برابروالی.

**تناسخ** (tanāsóx) ښځ.م. ۱) له یوه شکل نه پر بل شکل اوښتل، د هندوانو په نظر روح له یوه کالبوت نه وتل او بل ته ننوتل؛ ۲) باطلونه، زایلونه؛ ۳) په بده څېره ښکارېدل.

**تناسل** (tanāsól) نر.م. نسل پیدا کول یا زیاتول، اولاد پیدا کول، زېږونه.

**تناسلي الت** (tanāsolialát) ص. نب. د ښځې او نر شرمځی او مخصوص غړي.

**تناظر** (tanāzór) نر.م. ۱) یو بل ته کتنه، یو له بل سره مخامخېدنه؛ ۲) مناقشه، بحث کونه.

**تنافر** (tanāfór) نر.م. ۱) نفرت، کرکه؛ ۲) یو پر بل ویارنه؛ اد. په شعر یا نثر کې د دوندې او مشکلې کلیمې راوستل.

**تناقص** (tanāqós) نر.م. ورو ورو کمېدنه، کرار کرار لږېدنه، ورو ورو زیانونه، نقصانونه.

**تناقض** (tanāqóz) نر.م. یو تر بله نقیض، اختلاف، مخالفت، توپیر، یو د بل مقابل.

**تناو** (tanā́w) نر.م. ۱) تناب، رسی، پړی، کبر، بدریږه؛ ۲) د جرېب کښې تناب یا فیته.

**تناوب** (tanāwób) نر.م. وار اخېستونه، نوبت کونه، په نوبت، په وار.

**تناوکښ** (tanāwkáṣ) نر.م. غنه، غنې، جولاګی.

**تناوی** (tanāwáy) نر.م. د خېمې یا کېږدۍ رسۍ، د تمبو او تجیر تناو.

**تنبل** (tanbál) ص. نر.م. ۱) لټ، سست، بېکاره، متېه؛ ۲) ورګ. تمبل.

تنبو (tanbū́) نر.م. (ج. تنبوګان) وګ.، تمبو.

تنبول (tanból) نر.م. پان، پاڼ.

تنبه (tanbá) ښځ.م. (ج. تنبې) وګ. تمبه.

تنبېزه (tanbezá) ښځ.م. وګ. تمبوزک.

تنبېزی (tanbezáy) نر.م. وګ. تمبېزی.

تنبیه (tanbíh) ښځ.م. ۱) ملامته، ملامتیا، رټنه، دېکه؛ ۲) بېدارونه، هوښیارې، پوهونه.

تنتنا (tantaná) ښځ.م. دبدبه، شان، عظمت، پرتم.

تنخا (tanxá) ښځ.م. تنخوا، معاش.

تند (tand) ص. نر.م. وګ. تاند.

تند (tund) ص.نر.م. ج. ۱) توند، ګړندی، چابک، چټک؛ ۲) غوسه ناک، قهرجن، عصبي.

تنداره (tandā́ra) ښځ. م. د تره ښځه، تهندار.

تندر (tándar) نر.م(ج. تندرونه) تکه، تنا، تالنده، رعد، صاعقه.

تندرست (tandróst) ص.نر.م. روغ، جوړ، تکړه، غښتلی، روغ رمټ، سالم.

تندرکی (tandrakáy) نر.م. (ج. تندرکي) نیم سری، د نیم سر درد.

تندره[1] (tándra) ښځ.م. ۱) لمریا سپوږمۍ تندر نیول؛ ۲) تکه، افت، اسماني بلا.

تندره[2] (tundurá) ښځ.م. (ج. تندرې) ځړوبی، کړونګی، جروب؛

تندری (tandaráy) نر.م. د ونې نرم پوټکی چې کال په کال د زاړه پوټکي ځای نیسي.

تندک[1] (tindák) نر.م. (ج. تندکونه) ۱) تکوه، بلرې، تینډک؛ ۲) مج. سرګرداني.

تندک[2] (tundák) ص. نر.م. توندک، مرچکی، تند مزاجه، له قهر نه لمبه کېدونکی.

تندل (tandә́l) مص.مت. جوړول، رغول، ترمیمول.

تندلبان (tandalbā́n) ص. ځوانیمرګ.

تند مزاج (tundmizā́j) ص. نر.م. تندخویه، تند مزاجه، تند مجازه، خوشکښي، عصبي.

تندوالی (tundwā́láy) نر.م. ۱) تېزي، چابکي، تندي، چټکتیا؛ ۲) غصه، قهر، خوشکه.

تندوبه (tandobá) ښځ.م. (ج. تندوبې) ۱) اوبه تانده، اوبېزه؛ ۲) د اوبو داره، د اوبو فواره، سندرګه، زاوه، جورجوری، شرشره.

تندور[1] (tandúr) نر.م. وګ. تنور.

تندور[2] (tíndor) ښځ.م. وګ. تنداره.

تندوړی (tandoṛáy) نر.م. د پوزې هډوکی.

تندول (tundawә́l) مص. مت. ۱) تېزول، چالاکه کول چټکول؛ ۲) په غصه کول، په قهر کول.

تندوله (tandóla) ښځ.م. تندولی، یو ډول سابه دی.

تندوڼی (tanduṇáy) نر.م. وګ. چندوڼی.

تندوی (tandwáy) نر.م. سرېښتی، د سینې کرېندوکی.

تنده (tánda) ښځ. م(ج. تندې) ۱) اوبو ته زړه کېدنه؛ ۲) ځوز، سوز، یو ډول اغزن بوټی دی.

تندی (tandáy) نر.م(ج. تندي) ۱) تنده، د چوېلی، جبین؛ ۲) د هر حیوان نوی پیدا شوی بچې؛ ۳) ناوخته کرل شوی فصل؛ ٤) غونډ، ګردی.

تندي (tundí) ښځ.م. (ج. تندۍ) ۱) چابکتیا، بیړه، چټکتیا، ګړندیتوب؛ ۲) عصبیت، قهر.

تندۍ (tandә́y) ص. ښځ.م. ج. نوې لنګه شوې (غوا، مېښه...).

تندیاره (tandyā́ra) ښځ.م. وګ. تېندار

تندېدل (tandedә́l) مص.ل ۱) تېزېدل، چټکېدل؛ ۲) عصبي کېدل، قهرېدل.

تندي لیک (tandilík) ا.م. برخلیک، سرنوشت، تقدیر، قسمت.

تنډل (tandә́l) مص.مت. رغول، جوړول، پیوندول.

**تنډو** (tanḍū́) ص. نب. خټتو، گډو، نسور.

**تنډوس** (tanḍús) نر.م. يو ډول واښه دي.

**تنزري** (tanzáray) نر.م (ج. تنزري) و گ. تمځري:

**تنزل** (tanazól) نرم. ټيټوالی، ښکته والی، له پوړی (مقامه) رالوېدنه.

**تنزيل** (tanzíl) نر.م ۱) کمېدنه، ټيټېدنه، رالوېدنه پرېوتنه؛ ۲) د پيسو ربح، په رياضي کې يوه قاعده ده.

**تنسته** (tanastá) ښځ.م. ۱) هغه تارونه چې د رخت، قالين او... په اوږدو کې استعمال شوي وي ۲) د غنې ځاله، د عنکبوت ځاله.

**تنسوکه** (tansuká) ښځ.م. (ج. تنسوکې) ۱) يو ډول وربښمين توکر؛ ۲) شان، شوکت، پرتم.

**تنشا** (tanšā́) ښځ.م. وياړ، افتخار، سترتوب.

**تنظيم** (tanzím) نر.م. سمون، برابرتيا، برابرونه، سمبالتيا، رونونه، پېينه.

**تنظيمول** (tanzimawә́l) مص. مت. برابرول، سمول، رونول، پېيل، سمبالول، منظمول.

**تنفس** (tanafós) نر.م. ساکښل، ساښکنه، د سا کښته او پورته کېدل، نفس کښنه.

**تنقيد** (tanqíd) نر.م. ۱) صرافي کونه، سمې او ناسمې پيسې جلاکونه؛ ۲) کره کونه، د يوې ليکنې ښه والی او بدوالی سره بېلونه؛ ۳) گوتنيونه.

**تنقيص** (tanqī́s) نر.م. ۱) کمونه، لږونه؛ ۲) ناقصونه، ناقص کونه.

**تنقيط** (tanqít) نر.م. ليک نښې، ټکي ايښودنه، نقطه گذاري، د اعجام نښې لکه: ټکی (.)، کامه (،)، شارحه (:)، او...

**تنکی** (tankáy) ص. نر.م. (ج. تنکي) ۱) تازه، نازک، نرم، خام؛ ۲) نوی توکېدلی.

**تنکيتوب** (tankitób) نر.م. ۱) تازه والی؛ ۲) نرمتوب، تنکيوالی.

**تنگ**[۱] (tang) ص. نر.م. ج. ۱) راټول، هغه چې سور او بر يې کم وي؛ ۲) تربت، په تکليف کې، غريب، خوار، اړ، محتاج.

**تنگ**[۲] (tung) نر.م. کوزه، کوچنی اوږد منگی.

**تنگاچه** (tangāčá) ښځ.م. تنگاڅه، تنگاچه، چوتره، صرفه، ډبه.

**تنگ الواک** (tangalwā́k) ص.م. تنگ ليدی، تنگ نظره، متعصب.

**تنگ الواکي** (tangalwāki) تنگ نظري، تعصب.

**تنگ ترش** (tangtrúš) ص. نر.م. ډېر تنگ، لنډ بوږ.

**تنگتوب** (tangtób) نر.م. ۱) تنگوالی، تنگتيا؛ ۲) اړتيا، مجبوريت، تنگسه.

**تنگ خولی** (tangxū́lay) ص. نر.م. ۱) هغه چې خوله يې تنگه وي؛ ۲) نر.م. د خاورو منگ يا چاټی.

**تنگ زړی** (tangzә́ṛay) ص. نر.م. ۱) زړه تنگی، بې حوصلې؛ ۲) خپه، زهير؛ ۳) ممسک.

**تنگسه** (tangsá) ښځ.م. تنگسيا، غريبي، نېستي.

**تنگ کوچ** (tangkóč) نر.م. پچيس، خطکی، زمری، د هلکانو يوه لوبه ده.

**تنگلاسی** (tanglā́say) ص. نر.م. بېوزلی، غريب، خوار، مفلس، بې شتو، نېستمن، اړ.

**تنگ لاسي** (tanglāsí) ښځ.م. غريبي، خواري، محتاجي، مفلسي.

**تنگنا** (tangnā́) ښځ.م. (ج. تنگناوې) ناره، وت، دره.

**تنگ نظري** (tangnazarí) ښځ.م (ج. تنگ نظرۍ) بخيلي، بدنيتي، سوگتي، خسيستوب.

تنګوالی (tangwā́lay) نر.م. ۱) غريبي، عاجزي، تنګلاسي، احتياجي؛ ۲) لنډوالی.
تنګوړی (tanguṛáy) نـر.م. تنګـوچنی، وړوکی تنګی، د غرونو په منځ کې تنګه لاره.
تنګول (tangawə́l) مـص.مت. ترټـول، تکليف ورکول، ځورول، په عذابول، تکليفول.
تنګه (tangá) ښځ.م. (ج. تنګې) ۱) ميله، دُرمه، ستنه، ډنډر؛ ۲) بالاتنه؛ ۳) هغه اواز چې اوبښ ته د خې کولو پروخت ويل کېږي.
تنګی (tangáy) نر.م. ۱) تنګ، د غرونو په منځ کې لاره؛ ۲) د کوچيانو د کرتو جوال.
تنګي (tangí) ښځ.م. (ج. تنګۍ) ۱) تنګـوالی، غريبي، خواري، فقر؛ ۲) مصيبت؛ ۳) سپکوالی.
تنګېدل (tangedə́l) مص.ل. ۱) ترټېدل، ځورېدل، خفه کېدل؛ ۲) خـوارېدل، اړېـدل؛ ۳) د ناروغ ناروغي زياتېدل.
تنميه (tanmiyá) ښځ.م. وده، پرمختګ، نشونما.
تنور (tanū́r) نـر.م. (ج.تنورونه) تندور، د ډوډۍ پخولو ځای.
تنوري (tanurí) ص.نب. ۱) د تنـاره؛ ۲) په تنـاره کې پخه شوې ډوډۍ؛ ۳) تنـدوري، هغه بشـپړ پسه يا غوښه چې په تناره کې پخه شي.
تنوع (tanawóʔ) ښـځ.م. ډول ډول، رنـګ رنـګ، راز راز.
تنول (tanawə́l) مـص. مـت. ۱) غـرول، ګـرزول؛ ۲) په مزي کې پېيل؛ ۳) درنول، ارزښتمنول.
تنوير (tanwír) نر.م. ۱) رڼا، رڼايي؛ ۲) رڼاکونه، روښانونه، ځلونه.
تنويرول (tanwirawə́l) مـص.مت. ۱) روڼول، روښانه کول؛ ۲) ښرګندول، ښکاره کول.

تنه (taná) ښځ.م. (ج. تنې) قد، قامت، ونه، وجود، تن؛ ۲) بدنه، ستنه، د ونې ډډ.
تنها (tanhā́) ق.تنا، يوازې، ګوښي، ځانله، ځره.
تنهايي (tanhā́yi) ښځ.م. يوازېتوب، ګـوښي توب، بېلوالی، جدايي، يوازېوالی، ځره توب.
تنی (tanáy) ښځ.م. ترېرې خبرې، تتله خبرې.
تني (taní) ص.نب. شخصي، ذاتي، ځاني، دځان.
تنې (táne) اد. ځنې، ځخه، ورنه، ترينه، ورځنې.
تنېدل (tanedə́l) مص.ل. ۱) غـرېدل، ګـرزېـدل؛ ۲) پېيل کېدل؛ ۳) درنېدل، قدرمنېدل.
تنی نا (tanaynā́) ښځ.م. ته نه نی، ګـونېدل، ورو ورو نغمه يا سندره له ځان سره ويل.
تڼ (taṇ) نر.م ۱) شعر، سندره، غزل؛ ۲) تڼ، غړمبا، غورېدنه؛ ۲) بوږها، بوږېدنه.
تڼا (taṇā́) ښځ.م. و.ګ. تنا.
تڼاکه (taṇā́ka) ښځ.م(ج. تڼاکې) پولۍ، پړومبې، د لاسـو د ورغوو يا د پښو د تلو چې د کار يا مزل له لامله پولۍ شي.
تڼتڼا (taṇtaṇā́) ښځ.م. ۱) شـور، غـوغـا، ځوږ؛ ۲) شهرت، اوازه؛ ۳) انګازه، انعکاس.
تڼول (taṇawə́l) مص. مت. ۱) ټکول؛ ۲) نيمځاله کول؛ ۳) غرول، په تڼا راوستل.
تڼهار (taṇahā́r) نر.م. غړمبهار، ګړزهار، غرهار.
تڼی (taṇáy) نر.م ۱) د آس يا خره ګېډبند؛ ۲) ښځ.م. تکمه، دکمه، غوټه، بغنۍ؛ ۳) ګرېوان.
تو[1] (tu) نـر.م. ۱) توکانې، لـيـاړې؛ ۲) لعنت؛ ۳) کرکه، نفرت.
تو[2] (taw) نر.م. ۱) توت، نرتوت؛ تاو، حرارت، تودوالی؛ ۳) په غوسه کېدنه.
تو[3] (to) نر.م. تيو، کوچ کوچ، دسپي درابللو اواز.
توا (tə-wā́) د (ته‌به‌وايې) لنډيز، ګندي، ګنې...

**تو-آ** (towā́) نر.م. ښکارل، توښکارل، ښکارل، سپي په ښکار پسې توکول.

**تواتو** (tawātáw) نر.م. د نامشروع یا ناروا پیسو د پیدا کولو لاره یا طریقه.

**تواچي** (tawāčí) نر.م. تباشي، د ملک مسر سنیال، د کلي د مشر کومکي.

**توارث** (tawārós) نر.م. وراثت، په میراث اخستل په وراثت اخستل، په ارث وړل.

**توارد** (tawāród) نر.م. ۱) پرله پسې وارد ېدنه، په یوه وخت راتلنه؛ ۲) اد. د دوو شعرونو د لفظي او معنوي ورته والي پېښېدنه چې دوه شاعران یې بېل بېل سره جوړ کړي.

**تواره** (tawā́ra) ښځ.م. ۱) یو ډول کښېږدي؛ ۲) څپرې کوډخه، کوډۍ، جونګړه، چوپړې، کوډخه.

**توازن** (tawāzón) نر.م. برابروالی، په یوه وزن کېدل، په یوه تول کېدل، تعادل.

**تواضع** (tawāzóʼ) ښځ.م. عاجزي، کمیني.

**توافق** (tawāfóq) نر.م. ۱) برابري، سره سمېدنه، سره انډولېدنه؛ ۲) دوه اړخیزه خوښه، موافقه.

**توام** (tawā́m) نر.م. ۱) جوړه، غبرګ، غبرګوني؛ ۲) پرله پسې، یوځای، مربوط، تړلی.

**توامان** (tawāmā́n) ص. نر.م. ۱) نستعلیق ته ورته یو ډول پېچلی لیک دی؛ ۲) دوه کوچنیان له یوه نسه زېږېدلي، غبرګوني؛ ۲) ملګري.

**توان** (tawā́n) نر.م. طاقت، وس، وسه.

**توانا** (twānā́) ص.نب. زورور، غښتلی، پیاوړی، قوي، د طاقت خاوند.

**توانګر** (tawāngár) ص. نر.م. ۱) شتمن، غني، بډای، موړ؛ ۲) زورور.

**توبره** (tubrá) ښځ.م (ج. توبرې) ۱) کڅوړه، بوجۍ، خلته؛ ۲) د اس یا خره د اوربشو کڅوړه؛

۳) نر.م. د اسونو او خرو یو ډول ناروغي ده.

**توبری** (tubráy) نر.م. (ج. توبري) ۱) دغښې ښوکه؛ ۲) د پخې تبره ښوکه؛ ۳) کوچنۍ تبرګۍ.

**توبري** (tubrí) ښځ.م. (ج. توبرۍ) کښېده، پخې، سکوری، چکن، ګلدوزي، خامک دوزي.

**توبه** (tobá) ښځ.م. (ج. توبې) ۱) له ګناه څخه پښېماني، استغفار؛ ۲) د حق پر لاره سمېدنه؛ ۳) د انکار کلیمه.

**توبه ګار** (tobagā́r) فا. نر.م. پښېمانه، نادم، توبه کوونکی، استغفار کوونکی.

**توبیخ** (tawbíx) نر.م. دګنه، رټنه، ملامتونه، ورته په قهرېدنه، ستغې سپورې ورته وینه.

**توبین**(۱) (tobín) نر.م. خوند، څکه، مزه، ذایقه.

**توبین**(۲) (tawbín) نر.م. شنوبی، پېرومبي، د چکي له کڅوړي نه په یوه لوښي کې تولې شوې اوبه.

**توپ** (top) نر.م ۱) یوه جنګي وسله ده؛ ۲) پنډوس، ګیند، غونډسکه؛ ۳) تان، د توکر تان، توکی.

**توپان** (topā́n) نر.م (ج. توپانونه) ۱) سخت باد، طوفان، سیلی؛ ۲) نا اشنا کار، ستر بریالیتوب؛ ۳) وربخولي، د پایڅو کښېدو شوي خولې؛ ۴) لوی غم، لویه پېښه.

**توپان څپلی** (topānǰəpaláy) ص.م. توپان وهلی، جبار څپلی.

**توپانی** (topānáy) ښځ.م. ۱) د خوند او ظرافت خبرې؛ ۲) چټیات، بې مانا خبرې، اپلتې؛ ۳) فوق العاده خبرې یا چارې.

**توپ بازي** (topbāzí) ښځ.م.. د پنډوس لوبه، ګین بازي، والیبال، فوټبال...

**توپچي** (topčí) نر.م ۱) توپ ویشتونکی؛ ۲) هغه دله ده چې توپونه او... اختیار کې لري.

توپخانه (topxā́na) ښځ.م. ۱) توپونه، دځو توپونو مجموعه؛ ۲) دتوپونو ځای.

توپړ (topaṛ) نر.م. ۱) صدمه، ضرر، زیان، تاوان؛ ۲) پېښه، حادثه، واقعه.

توپړک (topṛák) نر.م. پوستین، پوستینچه.

توپک (topák) نر.م. ټوپک، یو ډول وسله ده.

توپک لېچ (topakléč) نر.م. ۱) هغه لرګی چې د ټوپک دشپېلۍ شاته لګېدلي وي؛ ۲) لټ، ګټ، بیلوټ، ګېټ.

توپک والا (topakwā́lā) نرم. د ټوپک خاوند، هغه څوک چې ټوپک لري یا یې وړي.

توپلندی (toplandáy) نر.م. (ج. توپ لندي) توپني، د زړو توتنی، د زړو توړول شوي ذری، د زړو توړول شوي وړې وړې ټوټې.

توپیر (tawpír) نر.م. فرق، تفاوت، امتیاز.

توپیرپال (tawpirpā́l) نر.م. تبعیض پالونکی، تبعیض پال.

توپیرواله (tawpirwā́la) توپیرپالنه، تبعیض (نژادي).

توت[1] (tawt) نر.م. یو شی په غوړو کې سره کول.

توت[2] (tut) نرم. (ج. توتان) یو ډول مېوه ده.

توتا (totā) نر.م. ۱) و.ګ. توتي؛ ۲) زاچ، څوري، پتکني، پتکری، زمچ.

توت خورکه (tutxwaráka) ښځ.م. داغ سري مرغی، کنه مرغی.

توتړی (totṛay) ص. نر.م. تورتوری، تتله.

توتښه (totaṣa) ښځ.م. (ج. توتښې) نرم او پوست کاڼی، پسته ډبره.

توتکاری (totkā́ray) نر.م. توتکی، توتکری، یو ډول توره مرغی ده.

توتکری (totkaráy) نر.م. د توتکي یو ډول دی.

توتکه[1] (tutaká) ښځ.م. ۱) چنغښک، مرۍ، کړغوږچ؛ ۲) ښکار، ښکر، د ژرندې د ډول او پلونو ترمنځ لرګینه نلۍ؛ ۳) لرګینه شپېلۍ.

توتکه[2] (totaká) ښځ.م. کجاوه، داسې آله ده چې له لښتو جوړېږي، تیږې پکې اچوي او د سیند بند پرې کلکوي له ګرېږه، شنې په.

توتکی سبک (totakaysabak) نر.م. یو ډول نازک بوټی دی چې نرمې پاڼې لري.

توتلی (totaláy) نر.م. صافه، صافي، د دېګي یا نورو ګرمولوښو د نیولو ټوکر.

توتن (totán) نر.م. اوماچ.

توتنکی (totankáy) نر.م ۱) توتنکه، توتنکی، توتنی، خرڅی؛ ۲) خځوزی.

توتني (totaní) ښځ.م ۱) د لمدو کړیوارو خیرې او خځوزې چې له لاسه وغورځېږي؛ ۲) استعمال شوې یا په لاس باندې اېښودل شوې نکریزې.

توتنی (totanáy) نر.م. د مالګې له ډنډ څخه د مالګې څګ راتولولو لرګینه آله.

توتڼکه (totaṇka) ښځ.م. پرخچه، توته، خځوزی، توتلی، توتنکی، د لرګي توتنی.

توتڼکی (totaṇkáy) نر.م. ۱) و.ګ. توتنکی؛ ۲) د زړو بوره، د زړو میده.

توتو[1] (tutu) نر.م. ج. آآه، بیوبیو، د چرګ د رابللو اواز؛ ۲) کوچنیان چرګ ته وایي.

توتو[2] (toto) نر.م. د سپي د رابللو اواز.

توتوپښ (totopaṣ) نر.م. ملاچرګک، ملاتوتک، هدهد، یو ډول مرغی ده.

توته (totá) ښځ.م. (ج. توتې) ۱) کوکری، کنګری، کوتری، د سپي بچی؛ ۲) د شپېلۍ ژبې؛ ۳) هغې آله چې جولاګان د تنستې تار پر تاووي او څغلوي یې.

**توتی** (totáy) ص. ښځ.م. سولېدلی سپينتي، سولېدلې بېدۍ، چتره بېدۍ.

**توتي** (totí) نر.م. توتا، طوطي، يو ډول مرغه دی.

**توتيا** (totyā́) ښځ.م. د رنجو کانی، د رنجو ډبره، هغه ډبره چې رانجه ځني جوړوي.

**توجه** (tawajú(h)) ښځ.م. ۱) مخه، پاملرنه، مخ کول؛ ۲) غور، دقت؛ ۳) لحاظ، مهرباني.

**توجيه** (tawjíh) ښځ.م ۱) وجه بيانونه، وجه ښوونه، تعبيرونه، سبب موندنه، تفسيرونه؛ ۲) حليه.

**توحيد** (tawhíd) نر.م. د يوه خدای (ج) منل، څښتن تعالی ته په يووالي قايلېدل.

**توخانه** (tawxā́na) ښځ.م. و گ. تاوخانه.

**توخته** (toxtá) ښځ.م. (ج. توختې) ۱) ارامي، کراري؛ ۲) زغم، تحمل؛ ۳) طاقت، توان.

**توخرى** (toxráy) نر.م. (ج. توخري) د شلومبو د پاې خيږ، د شلومبو د ښخ پخې (توخه).

**توخس** (toxás) نر.م. ۱) تاوان، زيان، نقصان؛ ۲) نخسان، په نس کې د بچي زيان.

**توخنی** (toxanáy) نر.م. (ج. توخني) تنور پاک.

**توخونی** (toxū́nay) ص.نر.م. نازولی، نيازبين، نازپرورده، په نازاموخته.

**توخير** (towxír) نر.م. خارښت، کا، کاکول، گرېدا، بخار، خارښت، پون، تخېدنه.

**تود** (tod) ص. نر.م (ج. تاوده) گرم، د سوړ ضد.

**تودښت** (tawdā́ṣt) نر.م. تودوالی، تودوخه.

**تودکانی** (todkā́ṇay) نر.م. و گ. توده تيږه.

**تودمن** (todmán) نر.م. يو ډول بوټی دی.

**تودنی** (tawdanáy) ښځ.م. بخارۍ.

**تودوالی** (todwālə́y) نر.م. حرارت، تودوخه، گرمي، تاو، تودښت.

**تودوبن** (tawdobán) نر.م. حمام.

**تودوبی** (tawdobáy) نر.م. ۱) هغه گړی (منگی) چې اوبه تودوي؛ ۲) حمام.

**تودوخه** (tawdóxa) ښځ.م (ج. تودوخې) ۱) تاو، گرمي، تودښت؛ ۲) گرمه سيمه، توده منطقه.

**تودوربښ** (todwaráṣ) نر.م. گرم باد، تود باد، توده ايشمه، توده ينبمه.

**تودوکی** (tawdukáy) ص. نر.م. گرم شان، لږ تود، لږ گرم، تړم، شيرگرم.

**تودول** (tawdawə́l) مص. مت. ۱) گرمول، حرارت وررسول؛ ۲) غوسه کول، لمسول، پارول.

**تودويني** (todwínay) ص.م. خون گرم، تندخويه.

**توده** (tawdá) ص. ښځ.م. (ج. تودې) ۱) گرمه؛ ۲) سړه توده، شکنه، پياوه؛ ۳) په پکتيا کې يو پښتني نرخ دی: کله چې پرچا د غلا يا قتل اشتباه وشي، نو په يوه کټوه کې يوه ټاکلې اندازه اوبه اچوي او کټوه په اور ږدي. د اوبو ايشېدلو وروسته تورن راولي چې له کټوې څخه اووه کاڼي راوکاږي.

**توده برېښنکه** (tawdabreṣnáka) ا.م. تودککی، پروتون (غاز).

**توده تيږه** (tawdatíẓa) ښځ.م. (ج. تودې تيږې) ۱) توده ډبره؛ ۲) خسا لوټه، د کوچنيانو يو ډول لوبه ده.

**توده خوا** (tawdaxwā́) ښځ.م (ج. تودې خواوې) توده سيمه، گرمه علاقه، گرمسير.

**توده سړه** (tawdasaṛá) ښځ.م. زکام، ريزش.

**توده لمبه** (tawdalambá) ښځ.م. گرم باد، تود باد.

**تودي** (todí) ص. نر.م. ج. و گ. تودي.

**تودېدل** (towdedə́l) مص.ل. ۱) گرمېدل، حرارت وررسېدل؛ ۲) غوسه کېدل، لمسېدل، پارېدل؛ ۳) مين کېدل، عاشقېدل، گرفتارېدل.

تودې سرې (tawdesaré) ښځ. ج. سرې تودې، ربړونه، ستونزې، ناخوالې، سختۍ.

توديع (tawdí) ښځ.م. ۱) خداى پاماني، مخه ښه ۲) جال، تور؛ ۳) شلخې؛ ٤) تره، تورښدنه؛ ٥) خامک دوزي؛ ٦) له حقه ازادون، بخښل.

توږ (toq) نرم. زيان، تاوان، نقصان، ضرر.

تور (tor) ص. نر.م. ج. ۱) په رنګ تور؛ ۲) ترا، تهمت، الزام؛ ۲) ص. متهم، ملزم؛ ۳) قصور، ګناه؛ ٤) ترهه، د زړه وسواس؛ ٥) د مرغانو د نيولو يو ډول جال.

تورا (torá) ښځ.م. تور، تومت (تهمت)، الزام.

توران (torán) ص. نر.م. ۱) تور کندهاري انګور دي؛ ۲) د تور جمع؛ ۳) تک تور، بېخي تور؛ ٤) ج. د زنګي، تورپوټکي.

توراني (toranáy) ص. نر.م. ۱) سودايي؛ ۲) تومتګر، تومتي؛ ۳) صفرايي، د صفرا؛ ۲) چغل، چغلمار، چغلګر.

تورانۍ (toranáy) ښځ.م. تورانۍ، کريڅۍ، يو ډول توره وړه مرغۍ ده چې اوږده لکۍ لري.

تورانۍ (toranáy) ښځ.م. وګ. تورانۍ.

توراېته (toráytá) نر.م. ج. يو ډول انګور دي.

توربازار (torbazár) نر.م. غل بازار، ناقانونه او خپلسري پېر و پلور.

توربخت (torbáxt) ص. نر.م. ۱) بې طالع، کم بخته، بدمرغه؛ ۲) نر.م. بدمرغي.

توربخن (torbaxán) ص. نر.م. لېږ غونډې تور، تورو شمه، تورو زمه، تور غونډې تور ته مايل.

توربخۍ (torbaxáy) ښځ.م. يو ډول کنښه ده، يو راز خامک، يو ډول بخۍ ده.

توربرېښن (turbréṣ) نر.م. ۱) تور بېښن، د تورې برېښن، دړکه، دبکه؛ ۲) د تورې ځلول، ګوابښ.

توربمبر (torbambár) نر.م. بورا، تورغمبس، يو حشره ده چې پر ګلانو ګرځي.

توره باس (torabás) نر.م. توره ايستونکی، غيرتي، تورزن.

تورپانه (torpáṇa) ښځ.م. بنفشه، يو ډول ګل دی.

تورپوست (torpóst) ا. م. وګ: تورپوستکی.

تورپوستکی (torpostákay) ص. نر.م. تور پوستی، تورپوټکی، نيګرو، حبشی.

تورپېکی (torpekay) ښځ.م. ۱) د تورپېکي خاونده؛ ۲) شخصي ښځينه نوم، سيامو.

تورپيل (torpíl) ښځ.م. وګ. تارپيل.

تورت (t(o,u)rt) ص. نر.م. ترت، د يوې خبرې سرې، سپين ويونکی؛ ۲) پاک، واضح، بې کنايې؛ ۳) تېز، چالاک، تکړه.

تور تاوده (tortawdá) نر. ج. شکنه، پياوه، ساړه تاوده، چتک ښورو، ښوروالی.

تورتپ (tortap) ښځ.م. تپه تياره، توره تياره.

تورتپی (tortapáy) نر.م. تورمخی، تيکمخی، هغه سړی چې د مخ پوستکی يې تور او د چيچک داغونه ولري.

تورتلب (tortaláb) ص. نر.م. بېخي سوي، يو مخ سوی، بالکل سوی.

تورتم (tortám) نر.م. ۱) توره تياره، ډېره تياره، تپه تياره؛ ۲) اړی ګړی، ګړبړ، ګډوډي.

تورتمرونی (tortamruṇáy) ص.م. تورتم رڼا کوونکی، تورتم يا تياره څيروونکی.

تورتمۍ (tortamáy) ښځ.م. تورې برېښېدونکي زلفې، هغه زلفې چې تکې تورې وي.

تورتوت (tortút) ص. نر.م. يو ډول توت دی.

تورتيپ (tortíp) نر.م. ۱) ګنه ګونه، بيروبار؛ ۲) ص. نر.م. تک تور، يو مخ تور.

**تورتېيلى** (torteyálay) ص. نـر.م. ۱) تک تور، ارغوش، ډېر تور (سړی)؛ ۲) تور سوی شی.

**تورجاش** (torjā́š) نر.م. يو ډول بوټی دی.

**تورځن** (turzán) نر.م. وگ.: تورزن.

**تورغونډی** (torǰun ḍáy) نر.م. ترغوټ، ښښځې، ښيښځه، غرنی سابه چې پاخه خوړل کېږي.

**تورځنگلی** (torcangálay) نر.م. باطل ځواک، باطل قوت.

**تورخوټی** (torxwaṭáy) ص.نر.م. ۱) تورگونی، ايندکی؛ ۲) زلموټی، ځوانی ته رسېدونکی.

**تورخېل** (torxél) نـر.م. ۱) د پښتنو ديوه واړه خېل نوم دی؛ ۲) غلام، مريی.

**تورخېله** (torxéla) ښځ.م. مينځه.

**توردرياب** (tordaryā́b) نر.م. لوی بحر، سمندر.

**توردلی** (tordaláy) نر.م. ۱) يو ډول توره مرغی ده؛ ۲) يو ډول شينکی.

**توروړی** (torṛáy) ښځ.م. تروی، گناهکار، يو توره مرغی ده چې سپينه لکۍ لري.

**تورزاغ** (torzā́ğ) نر.م. ۱) تورکارگه، ورووغ، تور کارغه؛ ۲) رقيب، غماز.

**تورزړی** (torzáṛay) ص. نر.م. غوسه ناک، کينه کښ، په زړه تور.

**تورزن** (torzán) ص. نر.م. ۱) تـوريالی، زړور، د توري مېړنی؛ ۲) په ملنډو دارن ته وايي.

**تورزن توب** (turzantób) نر.م. توريالیتوب، زړورتوب، مېړنتوب، مېړانه.

**تورزيری** (torzíray) نر.م. د توري زيري خاوند.

**تورسترگک** (torstargák) نـر.م. د شاهين په شېر يو تور سترگی مرغه دی.

**تورسر** (torsár) ص. نـر.م. ۱) هغه چې د سر وېښتان يې توروي؛ ۲) لوڅ سر، سرتور.

**تورسرکه** (torsaráka) ښځ.م. کارغـه، ښېښۍ، نظرماتې، هغه توته يا کتوه چې د سرغېړ دارولو ته يې د فصل په منځ کې ځوړوندوي.

**تورسرې** (torsaré) ښځ.م. ۱) ښځه، سياه سر؛ ۲) کونډه، سرتوره؛ ۳) هغه ښـځه چې تيکری او زړوکی يې پر سر نه وي.

**تورسکاڼ** (torskā́ṇ) ص. نر.م. ۱) تور رنگی، تور بخن، تور وشمه؛ ۲) تور آس.

**تور سورن** (torsūrán) نر.م. تور سوربخن اس.

**تور سوی** (torsáway) ص. نر.م. سوی سکور، گرد سره سوی، بېخي سوي، تک تور سوی.

**تورشاتگ** (toršatág) ا.م. تـوره ارتجاع، هغه ارتجاع چې له گروهې (عقيدې) سرچينه اخلي.

**تور شان** (toršā́n) ص. نـر.م.ج. توربخن، تور بخوند، توررنگی، تور غونډې.

**تور ښوری** (torṣuráy) نـر.م. ښورکی، ښـوري، يو ډول بوټی.

**تورغر** (torǧár) نر.م. ۱) تور رنگی غـر؛ ۲) لـه تکليف او کړاو څخه ډ ک کـار؛ ۳) دغـرو بوا لړۍ؛ ٤) سياه کوه.

**تور غړی** (torǧáṛay) نـر.م. (ج. تورغړي) مټ، له څنگلي څخه پورتنی برخه.

**تور غوجير** (torǧujír) نر.م. غوربجه، غوجېرا، يو ډول ژېړ گلی غرنی بوټی دی.

**تور غوړ** (torǧwáṛ) نـر.م. تور تېل، د شړشمو تېل.

**تور غوړی** (torǧwáṛay) نر.م. (ج. تور غوړي) ۱) پيشپرانگ، سارايي پيشي؛ ۲) ص. نر.م. کم عقله، ناپوه؛ ۳) سپين سترگی.

**تور غونډان** (torǧundā́n) نـر.م. يـو ډول تور انگور دي چې داني يې غټې وي.

**تورک** (torák) نر.م ۱) د توپک پېچتاو؛ ۲) د پیازو او نورو ترکارۍ واړه واړه پټي، کهارۍ، اډۍ، تیره ګۍ.

**تورکارۍ** (tor kā́ray) ص.م. بدورده، بد کارۍ، درغلی، جعلکار.

**تورکډهل** (torkaḍhál) نر.م. تور کوهی، تور زندان، سیاه چاه، سیاه چال، تورګدهل.

**تورکراړو** (torkrā́ṛo) ښځ.م. ګونګټ، غوځاړی، تورګونګټ.

**تورکړی** (torkə́ṛay) ص. نر.م. ۱) تور رنګ ورکړی؛ ۲) بدنام کړی، په تومت نیولی.

**تورکش** (torkáṣ) نر.م. تور، جال، دمرغیو د نیولو یو ډول جال.

**تورکښ** (tū́rkaṣ) نر.م. ۱) ایستلې توره؛ ۲) پخوایي عسکر ته وایه؛ ۳) جنګیالی.

**تورکښي** (turkaṣí) ا. سرتېري، جنګیالیتوب، سربازي، عسکري.

**تورکنی** (torkaṇáy) نر.م. تورلوی، تورکونی، تورکی، د لوګي خیرې، تول شوي لوګي.

**تورکوری** (torkwáray) نر.م. کورنۍ، یو ډول غرنی بوټی دی چې خونډورې دانې کوي.

**تورکونی** (torkwánay) ص.نر.م. ۱) تور غوټی، اینډکی، تور رنګی؛ ۲) بدمخی، سپین سترګی ۳) نر.م. تورلوی، تورکی، جمع شوی لوګی.

**تورکه** (toráka) ښځ.م. شامتوره، شامتورې، کامچره، یو ډول مرغۍ ده.

**تورکی** (torkáy) نر.م. ۱) حرف؛ ۲) تورشان؛ ۳) د تور اسم تصغیر؛ ٤) شیشی، ساختګي توره مرغۍ چې د شامتورو د نیولو لپاره په ونه کې اینبودله کېږي؛ ۵) دغنمو یا اوربشو هغه وږی چې د مرض له لامله تور اوښتی وي.

**تورګاړ** (torgā́ṛ) نر.م. ۱) اشخار؛ ۲) هغه ځای یا سیمه چې تورګاني پکې پیدا کېږي.

**تورګړدی** (torgaṛdáy) نر.م. د وریښمو یو ډول کښېده (خامک) ده.

**تورګل** (torgwál) نر.م. ۱) هغه ګل چې رنګ یې توروي؛ ۲) نرینه نوم.

**تورلال** (torlā́l) نر.م. یو ډول تور انګور دی.

**تورلحد** (torlahád) نر.م. قبر، ګور، لحد، په قبر کې د مړي اینبودلو ځای.

**تورلشی** (torlašáy) نر.م. تورلکشی، یو ډول غنم دي، چې د وږي لشه یې توره ده.

**تورلګاو** (torrlagā́w) ص.م. تورلګوونکی، تور تپوونکی، تومتګر، مفتري.

**تورلګاوی** (torlagāwáy) ا. تورلګونه، تور تپنه، تور تړل.

**تورلمی** (torlámay) نر.م. ۱) غسه، ګورکښ، ورلتی، هغه ځناور چې نوی مړی له قبر څخه راباسي؛ ۲) جفتک، دله خفک.

**تورلمی زېړن** (torlamayzə ṛán) نر.م. هغه اس چې زنګنونه یې توروي.

**تورلېمه** (torlemá) نر.م.ج. توري سترګې.

**تورم** (tawa r ū́m) نزم .وګ. انفلاسیون.

**تورماښام** (tormāṣā́m) نر.م. ۱) تیاره ماښام؛ ۲) اړي ګړی.

**تورمخکه** (tormaxáka) ښځ.م. الهو، شین غوښتل، د باران د پرله پسې اوربښت د ربډو لپاره د کلي کوچنیان یوه تورمخې ښځه جوړه کړي او کور په کور ګرځي له خلکو څخه شیان ټولوي او خدای ته زاری کوي.

**تورمخی** (tormáxay) ص. نر.م. ۱) مخ توری؛ ۲) ګناهکار؛ ۳) شرمنده؛ ٤) غماز، شیطان.

**تورن**(١) (torán) ص. نر.م. ١) تور، تور غوندي؛ ٢) تومتي، متهم.

**تورن**(٢) (tūrán) نر.م. تولی مشر، هغه منصبوال چې په رتبه کې له لومړي بريدمن څخه پورته او له جګتورن څخه ټيټ وي.

**تورنج** (turánj) نر.م. (ج. تورنجان) و.ګ. ترنج.

**تورن جنرال** (tūranganrā́l) نر.م. دقول اردو د جنرالی دويمه پوړی، دويم فرقه مشر، سرلښکر.

**تورنګړی** (torangṛáy) ص. نر.م. توررنګی، توربخن، توروشمه، توروزمه، توربخوند.

**تورواڵی** (torwālā́y) نر.م. ١) توررنګ، د رنګ تورېدنه؛ ٢) بدنامي، تومت، اتهام.

**توروانجه** (torwānjá) ښځ.م.ج. سياه دانه.

**تورول** (torawál) مص. مت. ١) تړول، وېړول، داړول؛ ٢) توررنګ ورکول؛ ٢) بدنامول.

**تورولی** (torawálay) ف. نر.م. (ج. تورولي) ١) وېړولی، داړولی؛ ٢) پارولی، کتولی.

**توره**(١) (tūrá) ښځ.م. (ج. توري) ١) يو ډول اوسپنيزه وسله ده؛ ٢) زړورتيا، مېړنتوب.

**توره**(٢) (tóra) ص. ښځ.م. (ج. توري) ١) د تورو مؤنثه صيغه؛ ٢) ماته پيسه؛ ٣) نوي اړول شوي ځمکه؛ ٤) اجوره، مزد؛ ٥) ښځ.م. په يوناني طب کې د سودايي مادې نوم؛ ٦) د قامي لښکر غونډه؛ ٧) دښمني؛ ٨) د ګاونډيانو د واده په وخت کې د ملک برخه کول او په بدل کې يې د ناوې لپاره ټيکري يا جامې جوړول؛ ٩) تومت، اتهام؛ ١٠) ووړکی کلی، د کوچيانو مېنه.

**توره انا** (toraanā́) ښځ.م. بېهتـه، تورانګه، يو ډول توره مرغی ده.

**توره بڼه** (torabáṇa) ښځ.م. تورتم، توره تياره، تروږمی، ترووږمی، توره تاريکه.

**توره بلا** (torabalā́) ښځ.م. ١) غټ مصيبت، غټه بلا؛ ٢) مج. کنجکاو، متجسس، مبتکر.

**توره پاڼه** (torapā́ṇa) ښځ.م. بنفشه، يو ډول بوټی دی چې ارغواني رنګه ګل لري.

**توره پاڼی** (torapā́ṇay) نر.م. شوخورک، يو بوټی دی چې دشولود بوزغلي قوېتوب لپاره له تخم شيندلو نه مخکې په ځمکه کې ښخېږي.

**توره تبه** (toratába) ښځ.م. لويه تبه، وچکی، محرقه، ترتکي، تبګی.

**توره تبی** (toratabáy) مص. ښځ.م. ١) توره تبخند، توره کنده؛ ٢) رند، تپه توره.

**توره تتی** (toratatáy) ښځ.م. بلبله، عندليب، يوه ښه اواز لرونکې توره مرغی ده.

**توره تياره** (toratyārá) ښځ.م. ١) تپه تياره، تورتپ، تورتم؛ ٢) اړی ګړی.

**توره تښنته** (toratéṣta) ښځ.م. سخته کرکه، ډېر نفرت، سخت بدراتلل.

**توره توخله** (toraṭūxála) ښځ.م. توره غاړه، شنه توخله، لويه توخلې، پوخلې.

**توره څله** (toracılá) ښځ.م. غوره څله، د ژمي څله، هغه څله چې په سپينه څله پسې راځي.

**توره څوکه** (toracū́ka) ښځ.م. د غره جګ سر، د غره جګه څوکه، د غره تور سر.

**توره دربله** (toradarbılá) ښځ.م. توره تيارا، توره دربه، تکه توره تاريکه، تپه تياره.

**توره دړه** (toradáṛa) ښځ.م. توره تخته، د ښوونځيو په ټولګيو کې د ليکلو تخته.

**توره شپه** (toraṣ̌pá) ښځ.م. ١) تياره شپه؛ ٢) اړی ګړی؛ ٣) د غم شپه، دانتظار شپه.

**توره شمه** (toraṣ̌amá) ښځ.م. (ج. تورې شمې) توره کېږدی، توره خېمه.

**توره کجله** (torakajála) ښځ. م توره خره چرچنه، توره چوغکه، کښتوولهٔ.

**توره لښته** (toralášta) ښځ. م. د الو بالو په ښهر یوه ونه ده چې له مېوې نه یې شیرخشت جوړوي

**توره مرغه** (toramarğá) ښځ. م. وژه، غـوژه، یو ډول واښه دي.

**توره وښکه** (torawә́čka) ښځ. م. ۱) دغوانانو یو ډول لوبه ده؛ ۲) توري وښکې، تورمميز.

**توره وښکۍ** (torawә́čkay) ښځ. م. توره اربره.

**توری** (tóray) نـر. م. (ج. تـوري) ۱) حرف، تکی؛ ۲) بيـا. طحـال، د انسان یو داخلي غړی دی؛ ۳) ص. نر. م. تور پوستی؛ ٤) د تـور د تصغیر نوم؛ ٥) نرم. د پښتنو یوه قبیله ده چې په کورمه او پاړاچنار کې مېشته ده؛ ٦) سورنی، سرنا؛ ۷) اندېرې ۸) دشـېخ ملي ددوترد وېش اخیري مقیاس؛ ۹) کاسیره، دروپې ښلېږويشتمه برخه

**توری** (toráy) ښځ. م. ج. ترې، یو ډول سابه دي.

**توري** (towarí) نر. ج. ۱) کډه، د کور سامان، کور لوښي؛ ۲) تورکې، د خط کښلو تور رنګ.

**توري** (túre) ښځ. م. چغه، چیغه، چغې، کـورې، د سپي د شړلو اواز.

**توريالی** (turyālā́y) ص. نر. م. مېړنی، تورزن، بهادر، د توري مېړنی.

**توريالیتوب** (turyālitób) نـر. م. مېړنتوب، بهادري، تکړه توب، تورزن والی.

**توريانۍ** (turyānáy) ښځ. م. توتکرکی، توتکرۍ، خرڅکه، د بارانه مرغۍ.

**توري اوبه** (toreobá) ښځ. م. ۱) کـاري درياب، په سمندر یوې د انديمان جزيرې چې انګـرېزانو بندیان په کې ساتل؛ ۲) بحر، سمندر؛ ۳) په پکتیا ولایت کې د یوې سیمې نوم.

**توري اوډ** (tor iód) توري اوډونکی، حروفچين.

**تـوري اوډون** (toriodū́n) ا. تـوري اوډونـه، حروفچيني.

**توري ايکۍ** (toreikáy) ښځ. ج. ماتې، تورې پیسې، ماتې پیسې، وړې پیسې.

**توري تپې** (toretapé) ښځ. م. ۱) تـوري تـرېې، زاری؛ ۲) تکې برګې، تکې برګې.

**توري تياري** (toretyāré) ښځ. ج. ۱) ډېـرې تیارې تـور تپ؛ ۲) بد نصیبي، بدمرغي.

**توري خاوري** (torexāwré) ښځ. م. ۱) سپېـرې خاورې، خړې خاورې؛ ۲) قبر، ګور.

**توريد** (towríd) نـر. م. راوړنه، راوړل، واردونـه، واردول، راوړه.

**تورېدل** (toredә́l) مـص. ل. ۱) تور رنګ ورکول کېدل، رنګ تـورېدل؛ ۲) بدنامېدل، تـومتي کېدل؛ ۳) کرکه پيدا کېدل؛ ٤) شرمنده کېدل؛ ٥) تربدل، ترهېدل، دارېدل.

**توريدول** (tawridawә́l) مص. مت. واردول. و ګ.: توريد.

**توريز چاپ** (torizčā́p) حروفي چاپ.

**تورېزی** (towrezáy) نر. م. یو ډول مرغه دی.

**توړ** (toṛ) ق. تراخېره، تر پايه، ترختمه.

**توړشک** (toṛšák) نر. م. پېغور، تانه، طعنه.

**توړی** (toṛáy) ص. نر. م. و ګ. ترتړی.

**توړۍ** (toṛáy) ښځ. م. ۱) ترور، د مور خور، خاله؛ ۲) مشرې ښځې ته د درناوي لقب.

**توړېزی** (toṛezáy) نـر. م. ترور زی، د ترور زوی، دخاله زوی، د توړۍ زوی.

**توزن** (tuzán) ص. نر. م. ۱) تیزن؛ ۲) ډارن.

**توزنه هیله** (tozanahíla) ښځ. م. بېځایه هیله، پوچ امید چې سپیتانه پکې وي.

**توزی** (tozáy) نر.م. ۱) هغه پند توکر چې د کېږدۍ پر سر يې ګنډي؛ ۲) يوه خځنده ده.

**توزيز** (tozíz) ا. اړه تړه، بندوبس، چاره، تابيا.

**توزيع** (tawzíʻ) ښځ.م. وېشنه، تقسيمونه، برخې برخې کونه، وندونډه کونه.

**توژنه** (tožána) ښځ.م. چمن، شنېلی، د يو ډول وښو نوم دی.

**توړاند** (toẓánd) ص. توړونکی، کنده کار، حکاک.

**توړل** (toẓál) مص. مت. ۱) تراشل، رنده کول؛ ۲) پاکول؛ ۳) مښل، لګول.

**توړلي** (toẓále) ښځ.ج. ۱) توتنکي، پتېرکي؛ ۲) د توړلي ښځمنه بڼه.

**توړند** (toẓánd) نر.م. رنده، تراش، توړنی، خراد.

**توړندی** (tozand...) نر.م. رنده، تراش، توړی.

**توړنه** (toẓána) ښځ.م. تراشنه، رنده کونه، توړنګ.

**توړون** (toẓū́n) نر.م. تراش، حک.

**توړونی** (toẓū́nay) نر.م. رمبی، د ختې توړنې رمبی، پخسه تراش، ګلبُر، ختتوړونی.

**توړۍ** (toẓə́y) ښځ.م. رنده، توړندۍ، تراش.

**توس**[1] (tus) نر.م. ۱) خوس، خوسماري، پته لګونه؛ ۲) د پرو توس؛ ۳) يو ډول نرمه، نازکه او ډولي شړۍ يا کمپله.

**توس**[2] (taws) نر.م ۱) ګرمي، تاو، د بدن دننني تودوخه زياتېدنه؛ ۲) قار، دباو.

**توسط** (tawasút) ق. په وسيله، په ذريعه.

**توسعه** (tawsiʻa) ښځ.م. پراختيا، ارتوالی، پراخوالی، وسعت، انکشاف.

**توسل** (tawasúl) نر.م. وسيله موندنه، وسيله کول، اړيکه پيدا کونه، ځان نېږدې کونه.

**توسن**[1] (tawsán) نر.م. سرکش اس، ياغي اس.

**توسن**[2] (tosán) نر.م. سبب، وجه.

**توسن**[3] (tū́san) ص. نر.م. ۱) خوسن (سپی)، بيمار (سپی)؛ ۲) وروسترګی (سړی)، حريص.

**توسنپېر** (tosanpér) ګر. علتيه حالت.

**توسنترويېکی** (tosanṭarwayíkay) ګر. سببي يا علتي ربط.

**توسند** (tawsánd) ص. نر.م. ۱) له تندې او ګرمي نه سوی الوی؛ ۲) توده او وچه ميره يا سيمه.

**توسنتوب** (tawsantób) نر.م. ۱) ګرمېدنه، تودېدنه؛ ۲) ژرژر وچېدنه او تږې کېدنه.

**توسنغونډله** (tosanǧanḍlá) ګر. علتيه جمله، سببي جمله.

**توسنکړ** (tosankáṛ) ګر. علتيه يا علي فعل.

**توسنوالی** (tawsanwā́lay) نر.م. ډېر تاو، زياته ګرمي، ډېره تودوخه، توسندوالی.

**توسنوييکی** (tosanwayíkay) ګر. علتيه ادات، د علت حرف.

**توسول**[1] (tawsawə́l) مص. مت. پړسول.

**توسول**[2] (tusawə́l) مص. مت. ۱) يو څه ته دچا مينه او ډېره لېوالتيا پيدا کول؛ ۲) ترسول؛ ۳) قارول؛ ٤) خوړول، کړول.

**توسولی** (tusawə́lay) مف. نر.م. ۱) هيله من کړی، شوقمن کړی، ارزومن کړی، په تمه کړی؛ ۲) په يوه شي پسې کړولی، زوکلولی.

**توسه** (tosá) ښځ.م. وسيله، سبب، علت، ذريعه.

**توسېدل**[1] (tusedə́l) مص. ل. ۱) تېېدل، په لته کې کېدل (سپی)، کړېدل؛ ۲) زوکلېدل.

**توسېدل**[2] (tawsedə́l) مص. ل. ۱) ترسېدل، ګبعې نيول/اخيستل؛ يوه شي ته لېوال کېدل؛ ۲) دغوا شيدې په غولانځه کې يا د مود شيدې په تي کې پاتې کېدل، د هغه پړسېدل او کلکېدل.

**توسيع** (tawsíʿ) ښځ.م. ١) پراخي، ارتوالی؛ ٢) ارتونه، پراخونه.

**توش** (tawš) نر.م. گرمي، تاو، توښ، توس.

**توشدان** (tušdā́n) نر.م. قطاروزمه، غاړکی، کمربند، ملاپټه، ملاوستنی، گردنی.

**توشک** (tošák) نر.م. (ج. توشکونه) نيالی، نالی، گډيله، توشکه، تولايي.

**توشل** (tawšál) ص. نرم. ١) رغی، درگ، درگی، رغی یا پټه سطحه؛ ٢) تيټ.

**توشول** (tušawə́l) مص. مت. شکارل، ويشکه کول، پارول، کيشکارل، ښکارل.

**توشی** (tawšáy) نر.م. (ج. توشي) ١) لرگين ښانک، پينه، پينکی؛ ٢) هغه ميوه چې زوم يې د خپلې ناوې له کوره له ځانه سره راوړي.

**توشيح** (tawšíh) ښځ.م. ١) ښکلونه، جوړونه، آراسته کونه؛ ٢) کومه ليکنه په خپل مهر او لاسليک سره ښکلونه؛ ٣) ترل؛ ٤) بد. شاعر خپل شعر داسې جوړوي چې د شعر د مسريو يا بيتونو د لومړيو توريو په يو ځای کولو کوم نوم، مسری یا کومه جمله لاس ته راشي؛ ٥) حق. د يوه هېواد د مشر په وسيله د هغه قانون لاسليک چې مقننې غونډې تصويب کړی وي.

**توښ** (١) (toṣ) ص. نر.م. متوجه، څير، پام لرونکی، څک، په څو.

**توښ** (٢) (tawṣ، tawaṣ) نر.م. تاو، بړاس، تپ، بخار، توښم، توخم.

**توښه** (toṣá) ښځ.م. (ج. توښې) زېرمه، د لارې خرڅ، خوری، سفر خرڅ، جېب خرڅ.

**توښی** (tawṣáy) ښځ.م. د هوالي تودنی (بخاری).

**توصل** (tawasól) نر.م. يو ځای کېدنه، رسېدنه، وصل کېدنه، جوختېدنه.

**توصيف** (tawsíf) نر.م. صفت کونه، ستاينه.

**توصيه** (tawsiyá) ښځ.م (ج. توصيې) سپارښت، نصيحت، پند، لارښودونه.

**توضيح** (tawzíh) ښځ.م. واضح کونه، څرگندونه، ښکاره کونه، شرح کونه، شرح، بيان.

**توطيه** (tawtiá) ښځ.م. دسيسه، چل، چا ته د ضرر رسولو لپاره پلان جوړونه.

**توغ** (toğ) نر.م. ١) بيرغ، جنده، نښان، ربی؛ ٢) هغه مېلمستيا چې دريمگړی يې د دوو کسو د پخلا کېدو لپاره کوي؛ ٣) توبغ، مرسته.

**توغل** (toğál) نر.م. جړی، زول، پرلنه پسې باران او واوره.

**توغم** (toğám) نر.م. زين پوښ، خوله وچ (عرقگير)، ارغگير، تر زين لاندې لمڅی.

**توغمه** (tuğmá) ښځ.م. قهر، خوشکه، غضب.

**توغمه ناک** (tuğmanā́k) ص. نر.م. قهرجن، غوسه ناک، پرغزناک، قارجن.

**توغندی** (tūğandáy) نر.م. راکټ.

**توغول** (tūğawə́l) مص. مت. ١) يو شی په پټه وړل؛ ٢) څه شی پر ځمکه باندې په زور سره غورځول؛ ٣) غورځول، شړل، ويشتل.

**توغه** (toğá) نر.م. تاغو، تاغه، تاخ، يو ډول ونه چې لرگي يې کلک او دانه يې خوږه ده.

**توغه** (toğá) ښځ.م. ١) کفاره، بدله، عوض؛ ٢) يو ډول ونه ده چې توره يا زېړه ميوه لري.

**توغېدل** (tuğedə́l) مص.ل. ١) يو شی په غلا يوې ډډې ته کېدل؛ ٢) په غلا تلل.

**توفيق** (tawfíq) نر.م ١) توان، طاقت؛ ٢) هدايت، لارښودنه؛ ٣) بريالیتوب، موفقيت.

**توقع** (tawaqóʿ) ښځ.م. ١) تمه، اميد، هيله، غوښتنه، آرزو؛ ٢) باور، اعتماد.

توقف (tawaqóf) نر.م. ۱) ایساریدنه، تالیدنه، ځنډېدنه؛ ۲) صبر، معطلي، ډیل، وقفه.

توقیع (tawqíˁ) ص.نر.م. ۱) پر کوم شه نبان ایښودنه، د فرمان یا کوم لیک لاسلیکونه؛ ۲) د پاچا لاسلیک، فرمان او طغری؛ ۳) خ. ثلث لیک ته ورته لیک دی.

توقیف (tawqíf) نر.م ۱) ستنونه، درونه، تالونه؛ ۲) بندي کونه، کښېنونه، ضبطونه.

توک[1] (tok) نر.م. ۱) نسل، نژاد، د توکم مخفف شکل؛ ۲) ډول، قسم، توگ، شی څیز.

توک[2] (tuk) نر.م. لاړې، توکانې، ویږگې.

توکارل (tokārə́l) مص.مت. سپی تو تو کول، سپی رابلل، سپی را کوچول.

توکانۍ (tukāṇə́y) ښځ.م. ۱) توکنۍ، توکدانۍ، تف دانۍ ۲) د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

توکانی (tukā́ṇay) نر.م. خراشکی، گلوربی، خرپ، ارخشی، خراچکی.

توکرکی (tukárkay) نر.م. تکرکی، توکری، کوډری، تیکری، د خاورین لوښي توته.

توکل[1] (tawakól) نر.م. ۱) په خدای(ج) تکیه، د خدای په هیله کېدل؛ ۲) نیت، اراده، پیل.

توکل[2] (tokál) نر.م. دارن او کمزوري سپي.

توکل[3] (tūkál) مص. مت. لاړې توکول.

توکلي (tawakulí) ص. نب. ۱) په ځان اعتباري، داده؛ ۲) هوډیالی، د ارادې خاوند؛ ۳) په خدای(ج) باور او تکیه لرونکی؛ ٤) تصادفي، اتفاقي.

توکلی (tukə́lay) مف.نر.م. دخولې لاړې توکری.

توکم (tūkám) نر.م. (ج. توکمونه) نسل، نژاد، ټبر، قوم، پښه.

توکمیز (tūkamíz) نر.م.ج. د توکم اړوند، نژادي.

توکنۍ (tukaṇə́y) ښځ.م. وگ. توکانۍ.

توکني (tukaṇí) ص. نر.م.ج. بېهوده، فضول، چټي، عبث.

توکول (tukawə́l) مص. مت. لاړې توکل.

توکوونی (tukawū́n ay) نر.م. تکی، تیکله، تیکلی، څکی، کلچه، تیکلی.

توکه[1] (toká) ښځ.م. ۱) توقه، شېښی، د جوارو بې دانو وږی؛ ۲) قسم، توگه، ډول، توکی، توگ.

توکه[2] (túka) ښځ.م. ۱) گټه، فایده؛ ۲) د توکولو د مطلق امر صیغه.

توکی (tókay) نر.م ۱) قسم، ډول؛ ۲) برخه، ونډه.

توکي توکي (tokí-tokí) ص.نر.ج. ۱) راز راز، ډول ډول؛ ۲) برخې برخې، ونډې ونډې.

توکېدل (tukedə́l) مص.ل. لاړې توکېدل.

توکیز (tokíz) ص. د توک (توکي) یا مادي اړوند.

توکیزوال (tokizwā́l) ص. ماده پال، ماده پرست، ماتریالیست.

توکیزواله (tokizwā́la) ا. ماده پالنه، ماده گرایي، ماتریالیزم.

توگه (tóga) ښځ.م. (ج. توگې) ۱) ډول، ذریعه، وسیله؛ ۲) قاعده، اصول، طرز.

توگی (tógay) نر.م. (ج. توگي) ۱) جته، کتار، صف؛ ۲) خرگی، کوتی، دخرې بچی.

تول[1] (tol) ص.نر.م ۱) انډول سیال، مخی، ساری، کفو؛ ۲) نر.م. وزن، تلنه.

تول[3] (tūl) نر.م ۱) فصل، کروندہ، کرنه؛ ۲) پټی، د کرځمکه؛ ۳) بن، باغ؛ ٤) پالېز؛ ٥) تیل، د مرغیو منظم تگ؛ ٦) یو ډول توکر.

تولان (tulā́n) نر.م. ۱) تولاند، د زړکې تگ؛ ۲) په ناز تلل، په مکیز تلل، تیل وهل.

**تولايي** (tulāyī) ښځ.م. نالي، نيالي، توشک.

**تولباړه** (tulbāṛa) ا. مالي تولاړ (ټېکس)، اېرتولاړ، ماليه پرعايد.

**تولپک** (tolpák) نر.م. وسو، جميا، تـورپـک، جمامه، د شرشم په شېر يو نبات دی.

**تولپېر** (tulpér) (گر.) اضافي حالت.

**تولترنګ** (tultaṛáng) (گر.) اضـافي (لغوي يا نحوي) ترکيب.

**تولتک** (tolták) نـر.م. (ج. تولتکونه) برستنه، شهرک، برستن، کنزړ، تلتک.

**تول تول** (twáltwál) ص. نـر. م. ج. توتې توتې، توکړي توکړي، شيرې شيرې.

**تولد** (tawalód) نر.م. (ج. تولدونه) زېږېدنه، پيدا کېدنه، زوکړه، شونه.

**تولک** (tolák) نر.م. تروکی، ترووکی، يو ډول تروه خونده سابه دي.

**تولکه** (tuláka) ښځ.م. ۱) تولی، د ژېړو شپېلی، شپېلۍ، ټوله، نی؛ ۲) هغه ښکاري مـرغه چې په لومړی کوريز کې يې نيمې ښکی توی شي.

**تولګر** (tolgár) فـا.نـر.م. ۱) تول کوونکی، وزن کوونکی، درواېي؛ ۲) نرخي، تولګرندی.

**تولګرندی** (tolgránday) ص. تولګر، نرخي، نياومن (قاضي)، حکم.

**تولمشر** (tolmašə́r) ا. د تول (ماليې) مشر، مستوفي

**تولند** (tulánd) فـا.نـر.م. ۱) تيل کـوونکی، تيل وهونکی، رغړېدونکی؛ ۲) مايل، ځوړ.

**تولنوم** (tulnúm) (گر.) مضاف نوم.

**تولنومځری** (tulnūmjə́ray) گر. ملکي ضمير، اضافي ضمير.

**تولنومی** (tulnū́may) گر. مضاف اليه.

**تولوال** (tūlwā́l) شتمن، څښتن، د ملکيت خاوند.

**تولوالي** (tūlwālī́) ا. څښتنوالی، دارايي، شتمني.

**تولول**[۱] (tulawə́l) مص.مت. ۱) څـرخ ورکـول؛ ۲) رغړول، تيلول، ګرړې کول، کولول.

**تولول**[۲] (tolawə́l) مص.مت. تول کول، وزن کول، تلل، پيودل.

**تولونج** (tulwánj) ا. تول پېدلون، د وزن بدلون (په شعر کې).

**توله** (tolá) ښځ.م. ۱) تول، دولس ماشې، د يوه وزن نوم؛ ۲) موازنه، انډولتوب.

**تولی**[۱] (toláy) ښځ.م. ۱) کنده، د ورېښمو يا زرو تللو کوچنی تله؛ ۲) د شولو ښځ.

**تولی**[۲] (tūláy) ښـځ.م. ۱) دودکښ، د تاوخـانې دودکښ؛ ۲) پوچ شوی کارتوس؛ ۳) يـو ډول وانښه؛ ٤) وګ. تولکه؛ ٥) پياله.

**تولی** (tuṭáy) نر.م. ۱) دورمه، کـرکی، دروی، نی؛ ۲) ځواني، قد او قامت؛ ۳) د توپک دروی.

**توليد** (tawlíd) نر.م (ج. توليدات) منځ ته راوړنه، پيدا کونه، زېږونه، حاصلونه.

**تولېدل**[۱] (tūledə́l) مـص. ل. ۱) څـرخـېـدل؛ ۲) رغړېدل ،لغړېدل، ګرړېدل، کولېدل.

**تولېدل**[۲] (toledə́l) مص.ل وزن کېدل، تلل کېدل.

**توليدول** (tawlidawə́l) مص. مت. منځ ته راوړل، پيدا کول، زېږول، حاصلول.

**توليدي** (tawlīdí) ص. نـسب. ۱) د زوکـړې؛ ۲) د توليد، دمنځ ته راوړو، د حاصل.

**توليه** (tawlya) ښـځ.م. مخپاک، ځانپاک.

**تومار** (tumā́r) نر.م. ۱) خاربښت، تخور، تخمار؛ ۲) طومار، کوری، پرېړه او اوږده ليکنه چې د کتاب او يا صحيفې په ډول وي.

**توماندار** (tumāndā́r) نـر.م. د بلوڅو د قبيلـوي مشر لقب دی.

**تومبار** (tumbā́r) نر.م. پارونه، لمسونه.

**تومبسکه** (tumbáska) ښځ.م. اوچته ځمکه، لوړه ځمکه، دومبسکه.

**تومبل** (tombә́l) مص. مت. مالوچ په ډانډس وهل، مالوچ ډانډس کول، تومبیا کول.

**تومبۍ** (tombә́y) ښځ.م. اوکرانۍ، اخور، پاخور.

**تومبیا** (tombyā́) ښځ.م. پاک شوي مالوچ، ډانډس شوي مالوچ.

**تومت** (tomát) نر.م. تور، تورلګونه، بدنامونه.

**تومري** (tumrí) ښځ.م. مو. تمري، تومري، دون، دغزل، قوالي او خیال په څېر یو طرز دي.

**تومله** (tómla) ښځ.م. تونه، تومنه، تېمنه، موره، دمستو جوړولو تومنه.

**تومن** (tumә́n) نر.م. ١) تومڼ، ترم؛ ٢) داشخار بوټی؛ ٣) تومان، د شلو روپو سکه؛ ٤) تولی، ګوند، عزیزولي؛ ٥) قبیله، تپه، طایفه، ډېرې، مېنه؛ ٦) دکروندې تخم، دکرغله.

**تومڼ** (tomә́ṇ) ص. نر.م. ج. ترم، شیرګرم، تومن.

**تومڼی** (tomáṇay) ص. نر.م. وګ: تومن؛ لږغوندې تود، شیرګرم، تومڼ.

**تومه** (tomá) ښځ.م. ١) دیوه شي تېل؛ ٢) مایه، تومنه؛ ٣) د ښکاري مرغانو خواړه؛ ٤) غوره مرۍ، غوره ګېه.

**تومېدل** (tomedә́l) مص. ل ١) تخرېد، توخرېدل، په خارښت راتلل؛ ٢) تومنه کېدل، خمیره کېدل.

**تون**[1] (tūn) نر.م. ١) مکاني وروستاړی؛ ٢) وطن، مېنه، د اوسېدو ځای؛ ٣) یوه غرنۍ ونه.

**تون**[2] (twan) نر.م. کوډۍ، کوډله، جونګړه.

**تون**[3] (ton) نر.م. وګ.: تون.

**تونبړۍ** (tonbṛә́y) ښځ.م. هغه کدو چې پاروګر بین ورڅخه جوړوي.

**تونبیا** (tonbyā́) ښځ.م. ١) سپېنسی، د پنبې نغ، د پنبې تار؛ ٢) د مالوچو پاکونه.

**تونپېر** (tunpér) ګر. مکاني حالت.

**توند** (tund) ص. نر.م.ج. ١) تېز، چټک، چالاک؛ ٢) مرچ لرونکي خواړه.

**توندلاری** (tondlā́ray) ص. د توند او سخت درېغ خاوند، سخت درېغی.

**تونده** (tundá) ښځ.م. ١) د وچې ضد، لمده مړۍ، لنده ډوډۍ، غوړه مړۍ؛ ٢) دښمني.

**تونس** (tawns) نر.م. غوسه، خوشکه، قهر، کاوږ، غضب.

**تونګ**[1] (tong) نر.م. ١) ګډوډ، تیت و پرک؛ ٢) دغلې ګدام؛ ٣خاورینه کوزه یا صراحي.

**تونګ**[2] (tawáng) نر.م ١) پیټار، د ښځو د کالیو ساتلو توکری؛ ٢) د تناره د ډوډۍ اېښودلو تخته.

**تونګه** (tónga) ښځ.م. پېغله نجلۍ، ځوانه جنۍ.

**تونګی** (tongáy) نر.م. (ج. تونګي) ١) له مزرۍ یا کرکې څخه جوړه شوې وړوکې صندوقچه؛ ٢) جیلغ، ځلانګې.

**تونل** (tunā́l) نر.م. په غره او یا تر ځمکې لاندې ایستل شوې سورۍ لارې.

**توني** (tunī́) (ګر.) مکاني.

**تونه**[1] (tuṇā́) ښځ. م. (ج. تونې) څېره، بڼه، قد، قیافه، قواره، موشاده.

**تونه**[2] (táwṇa) ښځ.م. توپ بازي، ګېن بازي.

**تونۍ** (tawṇáy) ښځ.م. ١) الماری ته ورته لوی صندوق؛ ٢) غرفه، د غرفې دوکان.

**توول** (towā́l) مص. مت. وګ. تویول.

**توولی** (towā́lay) مف. نر.م. توی کړی، تل کړی، بیولی، تویولی.

**توه**[۱] (towá) ښځ.م. گاره، کوروټي، په لوښي کې د شیدو او پیروي لاندې پاتې شوې برخه، جوغړ، جوغړي، دوغل.

**توه**[۲] (táwa) ښځ.م. د ځمکې کچه پوله یا برید.

**توه**[۳] (twa) ښځ.م ۱) شاتوت، د توت ونه؛ ۲) خوند.

**توهړ** (tohár) نر.م. د زقوم بوټی.

**توه کۍ** (tawakáy) ښځ.م. توده تیږه، تود کاڼی، د ماشومانو یوه لوبه ده.

**توهم** (tawahóm) نر.م. ۱) وسواس، اندېښنه، وهم، واهمه؛ ۲) گومان، شک.

**توهین** (tawhín) نر.م. سپکاوی، بې حرمتي، بې عزتي.

**توی**[۱] (táway) نر.م. د وزو رمه، د بزو کنډک.

**توی**[۲] (toy) نر.م. ۱) تې، سېلاب، نېز؛ ۲) خوړ، شېله؛ ۳) توی شوی؛ ٤) عبث؛ ٥) واده، ورا.

**تویۍ** (tawáy) ښځ.م. ۱) تبۍ؛ ۲) وروکې کړایي.

**تويالکه** (toyālká) ښځ.م. (ج. تويالکې) دېگ، دېگی، دېکچی.

**تویاند** (toyā́nd) ص. تویوونکی، تویگر، ریخته گر، ویلې فلز په کالب کې اچوونکی.

**تویانه** (toyāná) ا. تویېښت، ریخته گري.

**تویند** (toyánd) ص. نر.م. تویېدونکی، رژند، رژېدونکی، تلېدونکی، د ورېدونکی.

**تویول** (toyawə́l) مص.مت. ۱) تودول، تلول؛ ۲) ضایع کول، عبث کول.

**تويېدل** (toyedə́l) مص.ل. ۱) تلېدل، بیېدل؛ ۲) ضایع کېدل؛ ۳) رژېدل، دورېدل.

**ته** (ta) ض. ۱) د مفرد مخاطب ضمیر دی؛ ۲) اد. مف. پورې، تر پورې، د ظرف ویبکی؛ ۳) ورته، داسې ادات چې استقامت، لوری او ارتباط ښیي او د بالواسطه مفعول سره راځي.

**تهاجم** (tahājúm) نر.م. (ج. تهاجمونه) یو پر بل حمله کول؛ یو پر بل برغل.

**تهال** (tahā́l) نر.م. تال، لویه تالۍ یا ښانک.

**تهان** (thā́n) نر.م. ۱) تان، د توکر توپ؛ ۲) شپول، اغېل.

**تهجد** (tahajjód) نر.م. د شپې په منځ او پای کې عبادت کول.

**تهخانه** (tahxāná) ښځ.م. زېرخانه، زېرزمیني.

**تهداب** (tahdā́b) نر.م. بنسټ، تاداو، اساس.

**تهدید** (tahdíd) نر.م. وېرونه، دارونه، پتکه.

**تهذیب** (tahzíb) نر.م. ۱) پاکول، خالصونه؛ ۲) ښه سلوک؛ ۳) لیاقت، قابلیت، ورتیا.

**تهذیبي** (tahzibí) ص. نب. د تهذیب، کلتوري، اخلاقي، د مورال، په تهذیب مربوط.

**تهلکه** (tahluká) ښځ.م. هلاکېدنه، بربادي.

**تهمت** (tohmát) نر.م. تومت، تور، داغ، الزام.

**تهمتي** (tohmatí) ص. نب. د تومت؛ تومتي، تورن، بدنام.

**تهن** (tahán) ص. نر.م. ژور، غوچ.

**تهنه** (tahaná) ښځ.م. ژوروالی، غوچوالی.

**تهه** (tha) ښځ.م. له، تا، پرک په پرک، قت په قت، کت په کت، لا، د توکر سوړ، د توکر بر.

**تهېدل** (tahedə́l) مص.ل. رېږدېدل، رېږدېدل، دگېدل، لړزېدل، ترېدل.

**تهیله** (tahilá) ښځ.م. تبلی، کڅوړه، خلته، تېله، لویه بوجگی، بوخڅکی.

**تهیه** (tahyá) ښځ.م. تیارونه، برابرونه، چمتوکونه.

**تی** (tay) نر.م. ۱) د تې لرونکو حیواناتو هغه غړی چې شیدې په کې تولېږي؛ ۲) و.گ. تا.

**تې** (te) ښځ.م. ۱) د «ت» توري تلفظ؛ ۲) اد. ترې، ورڅخه، ورنه، ورځنې؛ ۳) د «ته» ضمیر او

«یې» مخفف شکل: تې وینې؛ ٤) خور، لګه.
**تیا** (tyā) ور. د پښتو ژبې یوه وروستاړی چې له صفتونو څخه اسمونه پرې جوړېږي.
**تیاتر** (tyātár) نر.م. تې آتر، تېتر، د تماشې ځای، نندارېځ، ننداره، د تماشا دښودلو ځای.
**تیاترال** (tyātrā́l) ص. نر.م. په تیاتر او نمایش اړوند، د تیاتر، ساختګي.
**تیار** (tayā́r) ص. نر.م. ۱) آماده، مستعد، چمتو؛ ۲) مکمل، جوړ؛ ۳) تکړه، څوړب؛ ٤) پوخ، بالغ؛ ٥) سنبال، سم، ځان جوړ کړی.
**تیارخور** (tayārxór) ص. نر.م (ج. تیار خواره) مفت خور، طفیلي.
**تیارسئ** (tyārsáy) امر. تیار اوسئ. آماده اوسئ. عسکري بولۍ، اماده باش.
**تیارول** (tayārawә́l) مص. مت. ۱) آماده کول، چمتو کول؛ ۲) جوړول، پخول؛ ۳) غتول، څربول ٤) سنبالول.
**تیاره** (tyārá) ښځ.م. تاریکي، تورتم.
**تیاره خپلواک** (tyāraxpalwā́k) گر. وروستی خپلواک (واول)، پایخپلواک.
**تیاری** (tayāráy) نر.م. ۱) چمتووالی، آماده کېدنه، تیارېدنه؛ ۲) درستوالی، ترتیب؛ ۳) غتوالی، څربېدنه؛ ٤) سنبالېدنه، دول، سینګارونه.
**تیارېدل** (tayāredә́l) مص. ل. ۱) آماده کېدل، د کار په کولو راضي کېدل؛ ۲) پخېدل، جوړېدل ۳) غتېدل، څربېدل؛ ٤) سنبالېدل.
**تیاسنتریزم** (tyāsantrizám) نر.م. له خدای (ج) سره مینه، خدای ته توجه.
**تیاسوفي** (tyāsufí) ښځ.م. عرفان، خدای پېژندنه، الهي حکمت، اشراق، تصوف.

**تیالکه** (tayālká) ښځ.م. (ج. تیالکې) د خسا ررر کتو (کتوی، کتوه).
**تیالوجي** (tyālojí) ښځ.م. خدای (ج) پېژندنه، دینیات، الهیات، الهي حکمت.
**تېبون** (tebún) نر.م. ۱) وګ. تیمم؛ ۲) عزم کول.
**تیپ** (tip) نر.م. (ج. تیپونه) ۱) تولی، د پوځ قطار؛ ۲) تیپ، نمونه، دول.
**تېپچه** (tepčá) ښځ.م. کرکري، نمنګی، کیرکیری، هغه آله چې له هغې څخه د ښځینه مېږي اواز ایستل کېږي.
**تیت** (tit) ص. نر.م. ج. خپور، ګډوډ، خوروور، تیت پرک، شیندل شوی، پرېشانه.
**تیتاله** (titā́la) ص. نر.م. ج. په ختیځې کلاسیکې موسیقۍ کې د یوه تال نوم دی.
**تیتر** (titár) نر.م. د زرکې په اندازه یو خړ رنګی یا توربرګ جنګي مرغه دی.
**تیترا** (titrá) عد. نر.م. وګ. تترا.
**تیتری** (titráy) ښځ.م ۱) خرېری، خومبه، دورنګ، ګوڅی؛ ۲) دخرېریو اچار.
**تیتوالی** (titwā́lay) نر.م. ګډوډوالی، خوروور والی، تیت و پرک والی.
**تیتول** (titawә́l) مص. مت، نوستل، شندل، خورول، ګډوډ کول، شیندل.
**تي تي** (titi) نر.م. ۱) بیو بیو، د چرګو او چرګوړو د رابللو اواز؛ ۲) کوچنیانو چرګوړي ته وایي.
**تیتېدل** (titedә́l) مص. مت. ګډوډ کېدل، خوروور کېدل، کرې پرې کېدل، خورېدل.
**تېڅاند** (tecā̄nd) ا. تېڅونکی، تېڅه ګر، برمه کار.
**تېڅل** (tecә́l) مص. مت. برمه کول، په برمه سوری کول.

**تېڅی** (tecáy) ښځ.م. ښوشتنی، برغسو، ګرمټ، برمه، د سوري کولو آله.

**تېځ** (tej) نر.م. زغل، ځغاسته، منډه.

**تېځل** (tejál) مص. مت. ځغلول، په ځغاسته کول.

**تيخواره** (tixwārá) نر.جمعه کوچنيان چې د يوې مور شودې يې رودلې وي، رضاعي ورونه، رضاعي خوېندې.

**تيخور** (tixór) نر.م. ۱) خاربښت، تخمور؛ ۲) ص. نر.م. دتي رودونکی ماشوم.

**تيخورتون** (tixortūn) ا. د تيخورو کوچنيانو پنډغالی، روتون.

**تيخورول** (tixorawə́l) مص. مت. خاربښتول، تخنول، تخنول، تخرول.

**تيخوری** (tixóray) ص. نر.م. ۱) تي پورې ماشوم د تي ماشوم؛ ۲) خاربښتي، تخنېدونکی.

**تيخورېدل** (tixoredə́l) مص. ل. خاربښتېدل، تخنېدل، تخرېدل.

**تېر** (ter) ص. نر.م. ۱) پخوانی، مخکنی؛ ۲) لاړ، اوړېدلی؛ ۳) نر.م. دوکه، تګي.

**تير** (tir) نر.م. (ج. تيران) ۱) وېشه، بش، شاتير؛ ۲) لاړی، دستک؛ ۳) غشی، ناوک؛ ٤) دغره هغه تېره څوکه چې ونې ونه لري.

**تېران** (terā́n) نر.م. جايز، روا.

**تېرايستل** (teriistə́l) مص. مت. غولول، دوکه کول، تګل، تېرېستل.

**تيربلی** (tirbaláy) ښځ.م. وزر، نينګاوو، هغه لرګی چې دکور له چت څخه بلې ته راوتلی وي.

**تېربوری** (terburáy) نر.م. چارمغز، متک.

**تېربوزی** (terbūzáy) نر.م. پاره، يو ډول ګنډل (ګنډون) دي.

**تېربه** (terába) ښځ.م. ملی، مولی.

**تېربېر** (terbér) ص.نر.م.ج. ۱) وړاندې وروستو، تېروېېر؛ ۲) چل ول.

**تېرسولی** (tersū́lay) نر.م. جونه، پاته شوی خواړه، پس خورده، پاته شونی.

**تېرغمال** (teraǧmā́l) ص. نر.م. ظالم، ظالم کار، تېری کوونکی.

**تېرغمل** (teraǧmál) نر.م. ظلم، زور، تېرغمی.

**تېرغملانه** (teraǧamalā́na) ا. و.ګ. تېرغمل.

**تيرک** (tirák) نر.م. د اوسپنې هغه سيخ چې د ژرندې دځرخ له پاسنۍ برخې سره وصل او د لاندينۍ پله له سوري څخه پاس وتلی وي.

**تيرکښ** (tirkáṣ) نر.م. ۱) دکشمشو د سائلو د کوټې سوری؛ ۲) دمورچې سوری.

**تېرکی** (terkáy) ښځ.م. ځنګل، ځنګله.

**تېرګه** (tergá) ښځ.م. ۱) تجير، هغه دېوال چې په کورکې د يوې برخې د جلا کولو لپاره پورته شوی وي؛ ۲) هغه تسمه چې روستاري وړباندې تړل کېږي.

**تيرلک** (tirlák) نر.م. ۱) برچکی، تيزکی، يو کوچنی لرګی دی چې په تلکه باندې راوړي او په هغه کې غوښه يا د وړې خسوزې پړدي.

**تېرمتی** (termatáy) نر.م. تتو، يابو، زوړ آس.

**تېرمهال** (termahā́l) (ګر.) تېره زمانه، تاريخ.

**تېرمهال کړ** (termahālkáṛ) ګر. ماضي فعل.

**تېرمهالي** (termahā́li) (ګر.) د تېرمهال (ماضي) اړوند، تاريخي.

**تېرناپای** (ternāpā́y) (ګر.) د تېرمهال مصدر.

**تېرندود** (terandṓd) نر.م. عسکري رسم ګذشت، عسکري پرېټ (پرېډ).

**تېرنه** (terána) ښځ.م. ۱) معافي، عفوه، تېرېدنه، بخښنه؛ ۲) ظلم، زياتی، جبر.

**تېرو** (terū́) ص. نر.م. ظالم، زياتي كوونكى.
**تېرواته** (terwā́tə) نر.ج. تېروتنه، خطا كېدنه، غولېدنه، دوكه خوړنه.
**تېروار** (terwā́r) ق. تېرځل، تېروخت، تېرنوبت.
**تېروتل** (terwatə́l) مص. ل. غولېدل، دوكه كېدل.
**تېروتنه** (terwatə́na) ا. ښويېدنه، ختا وتنه، غلطي، اشتباه.
**تېروتى** (terwə́tay) ص. نر.م. دوكه شوى، خطا وتى، غولېدلى، تېرايستل شوى.
**تېروري** (terwaráy) نر.م. سپك بار، سپك وري، هغه سامان چې له كوچېدو مخكې كوم ځاى ته لېږدول كېږي.
**تېرول** (terawə́l) مص. مت. ١) زغمل، پېځل؛ ٢) خوړل، نغړل؛ ٣) بلاربول؛ ٤) وخت اړول، ٥) تېره كول؛ ٦) زور سبق استاد ته لوستل؛ ٧) اړول، پورې ايستل؛ ٨) بخښل.
**تېرون ونډه** (terunwánda) ا. د تېرېدو حق، حق العبور.
**تېروني** (terū́nay) ص. نر.م. عزيز، گران، زړه ته نيږدې، خپل، خپلوان.
**تېرويستنه** (terwestə́na) ښځ.م. غولونه، ټگنه.
**تېره** (téra) ص.نر.م. ١) تېز (چاكو، توره، چاړه...) ٢) زورور، تكړه؛ ٣) چالاك؛ ٤) پوه، هوښيار؛ ٥) ص. ښځ.م. پخوانۍ، مخكينۍ؛ ٢) بلاربه؛ ٣) تلې، تللې، لاړه شوې.
**تېره توب** (terətób) نر.م. ١) تېزوالى، تېره والى؛ ٢) چالاكي؛ ٣) تكړه توب، تكړه والى؛ ٤) هوښيار توب، هوښيار والى.
**تېره شپه** (terašpá) ښځ.م. بېگانۍ شپه.
**تېرى** (teráy) ښځ.م. د يېنډې د لوښي د منډې په وخت كې يوه او بل طرف ته پېرونه خوړل.

**تېرى** (teráy) نر.م (ج. تېري) ظلم، زياتى، تجاوز.
**تېري** (teré) ښځ.ج. تيارې، تورتم.
**تېرېدل** (teredə́l) مص. ل. ١) تلل، خوړېدل؛ ٢) ځارېدل؛ ٣) حامله كېدل؛ ٤) زغمل كېدل؛ ٥) نغرل كېدل؛ ٦) مړ كېدل؛ ٧) گذشت كول.
**تېرېږه** (terezá) ښځ.م. ترېږه، يو ډول بوټى دى.
**تېريستل** (teristə́l) مص.مت. و گ. تېرايستل.
**تېري كوونكى** (teraykawū́nkay) فا.نر.م. زياتي كوونكى، ظلم كوونكى، متجاوز.
**تېز** (tez) ص. نر.م.ج. ١) وندې، چست، چابك؛ ٢) هوښيار، ځيرك؛ ٣) تېره؛ ٤) ژور، عميق.
**تيز** (tiz) نر.م. ١) تيز، گوز؛ ٢) و گ. تز.
**تېزاب** (tezā́b) نر.م. يو ډول تنده او سخته مايع ده چې په بدن يا كاليو ولوېږي سوځي يې.
**تيز بيز** (tizbíz) نر.م. د بېړيو يو ډول لوبه ده.
**تيز تيزكو** (tiztizakó) ښځ.م. تيزتيزه كې، گونگوټي ته ورته يو ډول برگه خزنده ده چې په لاس ولگېږي نو له كوني نه يې تور لوگى وځي.
**تېزذهنى** (tezzéhnay) ص. تېزاندى، ژرپوهى.
**تېزرفتار** (tezraftā́r) ص. نر.م ١) چاخ، چابك، گړندى؛ ٢) نر.م. يو ډول كوچنى موټر دى.
**تيزرگ** (tízrag) نر.م. په پښه كې يو رگ دى چې په تينگ نيولو سره ډېر خوږېږي.
**تېزس** (tezə́s) نر.م. (ج. تيزسونه) و گ. تز.
**تېزل** (tezə́l) مص.مت. و گ: تېځل.
**تېزليدى** (tezlíday) ص. تېزويني.
**تېزمزاج** (tezmizā́j) فا.ص. نر.م. خوشكتې، غوسه ناك، قهرجن.
**تيزن** (tizán) ص. نرم. ١) ترن، تغن؛ ٢) داړن.
**تېزندى** (tezandáy) ص. نر.م. د زندي پېرى، د غرغرې پېرى.

**تېزوالی** (tezwā́lay) نر.م ۱) چټکتیا، چابکي، ګړندیتوب؛ ۲) چالاکي، هوښیاري، پوهوالی؛ ۳) تېره توب، تېزتوب.

**تېزول** (tezawә́l) مص. مت. ۱) چاخول، چټک کول؛ ۲) چالاکه کول، پوه کول؛ ۳) تېره کول.

**تېزه** (téza) ص. ښځ.م. تېزه ګی، په روانۍ سبق ویل.

**تېزي** (tezí) ښځ.م. سورلي، سپرلي.

**تېزېدل** (tezedә́l) مص.ل. ۱) چستېدل، چټک کېدل؛ ۲) هوښیارېدل؛ ۳) تېره کېدل.

**تيزکه** (tizáka) ښځ.م دلرګي يوه پلنه او اواره ډبلۍ.

**تيزه** (tíza) ښځ.م. ۱) کاڼی، ډبره، ګټه؛ ۲) پ. ک. قومي بنديز، يو راز متارکه ده چې د قبيلې د دښمنو اړخونو ترمنځ کېږي.

**تېسه** (tésa) ښځ.م. ۱) سيما، په خرڅ کې تنګي؛ ۲) ګټه؛ ۳) زياتوالی؛ ٤) تګي.

**تېش** (tex̌) نر.م. تسپار، سسپار، دسپارې څوکه، د کرکې څوکه، د پال يا پالې څوکه.

**تېش خولی** (tex̌xwálay) ص. نر.م. اوچته غونډې خولی، جګه خولۍ.

**تېشن** (tex̌án) ص. نر.م. تېښن، چېشن، سېښن، ببر، هغه څوک چې لوی لوي وېښتان لري.

**تېشه** (tex̌á) ښځ.م. تربنځ، ترخڅ، تنبڅ.

**تېښت** (teṣt) نر.م. تېښته، ځغل، منډه، ځغاسته.

**تېغ** (teǧ) نر.م. (ج. تېغونه) ۱) توره، خنجر، چاړه؛ ۲) نوغی، تېغی، تازه ټوکېدلی بوټی.

**تېغنه** (téǧna) ښځ.م. (ج. تېغنې) ۱) تېغ، نوغی، تازه ټوکېدلی؛ ۲) تېخی، تبی؛ ۳) ټيکلی، ککوړی، د ګرافون ريکاټ.

**تېغون** (téǧū́n) ص. نر.م. ۱) روڼ، ځلېدونکی، ځلېدونکی؛ ۲) يو ډول باز.

**تېغه** (téǧa) ښځ.م. ۱) تېغ، غوڅوونکی آله؛ ۲) دغره څوکه، تېغ سر؛ ۳) سنج، ډبام سنج.

**تېک** (tek) ص. نر.م. ۱) تېغ، اوچت؛ ۲) څرګند، ښکاره، جوت؛ ۳) سپين سترګی، تېغ يغ.

**تيکړک** (tikṛák) نر.م. يو ډول زانې دی چې پښې يې بېخي توري او اوږدې وي.

**تېکه** (téka) ښځ.م (ج. تېکې) ۱) ځنګزن، راځوړند؛ ۲) تېکی، د تورې نيام، غلاف؛ ۳) ص.نب. تېک، په غرور کې.

**تېکی** (tékay) نر.م (ج. تېکي) چړتون، غلاف، نيام، د چړې يا تورې پوښ.

**تېکير** (tekír) نر.م. ۱) په سر کې سپېږې يا ريچې لټونه؛ ۲) رخه کونه؛ ۳) تحقيق کونه، څېړنه.

**تيګوغی** (tigū́ǧay) نر.م. يو ډول ډوډۍ ده.

**تيګه** (tíga) ښځ.م. ۱) تيګا، سالنډی، سابندي، ساوهنه؛ ۲) زغم، تحمل.

**تېل** (tel) جن. ۱) غوړ، هغه غوړي چې له شرشمو، کونځلو او... څخه ايستل کېږي؛ ۲) نفت.

**تېلپکه** (telpә́ka) ښځ.م. (ج. تېلپکې) د پښتنو يو خاص ډول خولۍ ده.

**تېل داني** (teldānáy) ښځ.م. کوپۍ، هغه قوطی ته وايي چې تېل په کې وي، بوتلګی.

**تي لرونکي** (tilarūnkí) ص.نر.م. تيور، غولانځه لرونکي، پستاندار.

**تېلو** (teló) ښځ.م. غولانځ، هغه کڅوړه چې د لنګو مېږو غولانځونه وراچوله کېږي.

**تېل وړونکی** (telwṛū́nkay) ص.نر.م. ټانک، ټانکر، د تېل وړلو نقليه وسيله.

**تيله** (tilá) ښځ.م ۱) زرتار، ګلابتون؛ ۲) د زرتارو لړ، د زرتارو کوړۍ، د ګلابتونو کړۍ.

**تېله** (telá) ښځ.م. کڅوړه، بوجۍ، ګونۍ، تېلۍ.

**تیله داره** (tiladā́ra) ص. ښځ. م. د تیلې، له تیلې نه جوړه، زري، د زرتارو، د ګلابتوني.

**تیلی** (tiláy) نر. م. ۱) اورلګیت، تیلی، ګوګړ؛ ۲) د کارېز دنه، ۲) چخچي، پلته، لحاشه؛ ۳) ترېږی، ترېلی.

**تېلۍ** (teláy) ښځ. م. همیانی، میانی، کڅوړه.

**تیلۍ** (tiláy) ښځ. م. ۱) چنده، ترازه، تیلم، قاش؛ ۲) د ګوګړ کاڼی؛ ۳) دلرګي نری تېره برخه.

**تیلي** (tílí) فا. نر. م. ګېڼېګر، د تېلو ګاڼې لرونکی، د تېلو اېستونکی.

**تیم** (tim) نر. م. ۱) وګ. تیم؛ ۲) مو. تم، تکراري قطعه، د موسیقۍ هغه قطعه یا میلوډي چې تکرارېږي؛ ۳) موضوع، مطلب، مقاله.

**تیمبوزک** (timbūzák) نر. م. وګ. تربوزک.

**تیمبوزی** (timbūzáy) نر. م. تینبوزی، ورسک ترنه، تمبوزی ترنه، تربوزک، مول.

**تیمچه** (timčá) ښځ. م. خرجین، مشکی، هغه کڅوړه چې له غالۍ نه جوړه وي.

**تیمم** (taymúm) نر. م. هغه عمل چې د ناروغۍ یا اوبو د نه پیدا کېدو پر مهال د اوداسه پر ځای ترسره کېږي او عبادت پرې جایزېږي.

**تیمور** (timúr) نر. م. ۱) فولاد، پولاد.

**تینبوزک** (tinbuzák) نر. م. وګ. تربوزک.

**تینتیغی** (tintiğáy) نر. م. شین تېوی، شین توبکه، چکی، یوه برګه غونډې مرغۍ ده.

**تین تېرک** (tinterák) نر. م. بمبېرک، ستنه.

**تین تېنه** (tintená) ښځ. م. یو ډول مرغۍ.

**تینداره** (tindā́ra) ښځ. م. وګ. تنداره.

**تیندک** (tindák) نر. م. وګ. تندک (۱).

**تیندکه** (tindáka) ښځ. م. تیندوبۍ، د اوبو داره، د اوبو پواره، فواره، د اوبو پشکه.

**تیندلک** (tindalák) نر. م. ۱) ګوډی؛ ۲) اتکړ خور، دنګېدونکی، نوک وهونکی.

**تیندوړی** (tindóṛay) نر. م. تینډوړی، د پزې پېزوانک، د پزې کړېندوکی.

**تیندوڼی** (tindóṇay) نر. م. ۱) دغوږ کړېندوکی برخه؛ ۲) د پزې هغه برخه چې ښځې پکې پېزوان اچوي.

**تیندوی** (tindáway) نر. م. کړېندوکی، غضروف.

**تینکی** (tinkáy) نر. م. د دېګ کفګیر، چمچه.

**تېنګ** (teng) نر. م. تابوت، شخره، د مړي ورلو لرګین صندوق.

**تینګړۍ** (tingṛáy) ښځ. م. ۱) چتکی، ګوترک، د دوو ګوتو ترک، ۲) کته پیش، موکی.

**تینګړی** (tingṛáy) نر. م. غاب، لوړکی، پرانېږ، ترینګلی.

**تېنګه** (tengá) ښځ. م. ګوټې، میرګاټې، واړه واړه کاڼي چې کوچنیان لوبې پرې کوي.

**تینګۍ** (tingáy) ښځ. م. ینګه، په یوه سا اوبه چښل.

**تیور** (taywár) ص. نر. م. ۱) وګ. تي لرونکي؛ ۲) غټ تي لرونکی.

**تیور** (tiwár) ص. نر. م. ج. مو. له هغو پنځو سرونو څخه چې اشتراک مني، هر یو یې یو بېل سُر لري چې تېور ورته وايي.

**تیورا** (tewará) ص. نر. م. ج. مو. داوو ماترو څخه جوړ د یوه تال نوم دی.

**تیورژوی** (tiwaržáway) نر. م. غولانځور ژوی، تي لرونکی ځناور.

**تیورم** (tyorám) نر. م. قضیه، مسئله، قاعده.

**تیورور** (tiwrór) ا. دتي ورور، رضاعي ورور.

**تیوري** (tyuri) ښځ. م. نظري اصول، نظري علم.

کلي اصول، علمي فرض یا فرضیه، نظري تحقیقات، علمي موضوع.

**تېوزه** (tewzá) ښځ.م. (ج. تېوزې) سمڅ، گاره، سپون غاړی، چپوره.

**تیه** (túya) ښځ.م. په بهېدیو او نورو لویو کې د بیا نوبت اخیستو لپاره غیږ.

**تېیل** (teyə́l) مص. مت. په غوړو کې سره کول، په تېلو کې سره کول، سره کول.

**تېیلی** (teyə́lay) مف. نر.م. (ج. تېیلي) په غوړو یا تېلو کې سور کړی.

**تېینکی** (teyə́nkay) نر.م. (ج. تېینکي) د پزې تنکی هډوکی، د پزې کرپندوکی.

**تېینه** (teyə́na) ښځ.م. په غوړو کې سره کونه.

**تېینی** (teyə́nay) نر.م. (یو پوړ، یوه گانی، چنې یا داسې بل شی چې په یوه وار وریت شي.

**تېینې** (teyə́ne) ښځ.م. اینه، لورماښ، لرماښ، پرپوس، لړمون، یینه.

**تېیونکی** (teyū́nkay) فا. نر.م. په غوړو کې سورکوونکی، په تېلو کې سورکوونکی.

**تیي** (tayí) ښځ.م. دایي، قابله.

# ټ

**ټ** (ṭe) ښځ.م. (ټې) د پښتو الفبې شپږم توری دی.

**ټاب** (ṭā́b) نر.م. ټاپ، افسوس، ارمان.

**ټابلېټ** (ṭābléṭ) نر.م. Tab'let ګولۍ، قرص.

**ټابۍ** (ṭābáy) ښځ.م. هغه اوښه چې دوه کاله پس بچی زېږوي.

**ټاپ** (ṭāp) نر.م ۱) ټاب، ارمان، افسوس؛ ۲) مُهر، نښان، ټاپه؛ ۳) سر، څوکه؛ ۵) تېز تګ؛ ٦) نامتوسړی، وتلې څېره.

**ټاپ ټیپ** (ṭāpṭíp) نر.م. ۱) دارمدار؛ ۲) ډول، سینګار؛ ۳) کمزوری، بوډا، ټپ زوړ.

**ټاپل** (ṭāpə́l) مص. مت. ۱) ټاپه لګول، مُهر لګول، چاپول؛ ۲) څاروی خسي کول، ټېپي کول.

**ټاپن** (ṭāpán) فا. نر.م. مُهر لګوونکی، ټاپه کوونکی، چاپه کوونکی، چاپګر.

**ټاپنځی** (ṭāpənǰay) نر.م. چاپخانه، چاپخونه، مطبعه، د چاپولو ځای، چاپځای.

**ټاپنه** (ṭāpə́na) ښځ.م. ۱) چاپونه، ټاپه لګونه؛ ۲) خسي کونه، ټکونه، ټېپي کونه.

**ټاپو** (ṭāpū́) نر.م. ۱) جزیره؛ ۲) برج، ماڼۍ؛ ۳) راوتلی ځای.

**ټاپوړه** (ṭāpoṛá) ښځ.م. (ج. ټاپوړې) ټاپونه، د کالیو مینځلو تخته.

**ټاپوړی** (ṭāpoṛə́y) ښځ.م. توکان، د تخرګ امسا، د ترخ امسا، د تخرګ لکړه.

**ټاپول** (ṭāpwə́l) مص. مت. چاپول، ټاپه لګول، ټاپېول..

**ټاپووزمه** (ṭāpūwázma) ښځ.م. جزیره نما، د ټاپو په څېر؛ جغ. هغه وچه چې درې خواوو ته یې اوبه او یوې خوا ته یې وچه وي.

**ټاپه** (ṭāpá) ښځ.م. (ج. ټاپې) ۱) مُهر، نښانه؛ ۲) په جامه یا ټوکر باندې څه کښېښېده؛ ۳) تور، تهمت؛ ٤) رټه، لکه، داغ.

**ټاپه رس** (ṭāparás) نر.م. نورپرست، کاپرګل.

**ټاپي** (ṭāpay) نر.م. (ج. ټاپي) ۱) دوستي، اشنايي؛ ۲) وخت، موده؛ ۳) پټه مشوره؛ ٤) د ناروغتيا سخت وخت؛ ۵) پي، بيانه، (په تجارت کې) مخکې روپۍ؛ ٦) واټن، منزل؛ ۷) د پنور نښته؛ ۸) جم جګړه، زول باران؛ ۹) ټاپه لګوونکی.

**ټاپۍ** (ṭāpáy) ښځ.م. ۱) د غنمو د درمند خاصه نښه، ۲) په خولۍ کې د ګلابتونو ګل.

**ټاپي ټاپي** (ṭāpiṭāpí) ص. نر.م. خال خال، خاپ خاپ، تکي تکي، داغ داغ.

**ټاپېدل** (ṭāpedál) مص. ل. چاپېدل، چاپ کېدل، مهر کېدل، نښانه کېدل.

**ټاټ** (ṭāṭ) نر.م. ۱) وياړ، فخر؛ ۲) لويي؛ ۳) کوږ، راتاو؛ ٤) سُندين توکر، ترپال؛ ۵) مو. د آهنګونو د راغونډېدو مرکز او د موسيقۍ د اشکالو (سري نمايش)..

**ټاټ باټ** (ṭāṭbāṭ) ص. نر.م. ټاټ پاټ، نخره، شان شوکت، ساټ باټ.

**ټاټسي** (ṭāṭasí) ښځ.م. توکه، پرپرۍ، شېتۍ.

**ټاټکه** (ṭāṭáka) ښځ.م. يو ډول بوټی دی چې ژاوله ځني جوړوي، مرخېړی، ټاټوکه.

**ټاټکی** (ṭāṭkáy) نر.م. اوسپنيز لوښی چې ودانيزه مساله پکې وړل کېږي.

**ټاټوالی** (ṭāṭwālay) نر.م. کوږوالی، يو اړخ ته، ځنګزنتوب، ځنګزنوالی.

**ټاټوب** (tatob) نر.م. ۱) ګذران؛ ۲) خاموشي، چوپتيا، آرامي.

**ټاټوبه** (ṭāṭóba) ښځ.م. ټاټوبی، د استوګنې ځای.

**ټاټول** (ṭāṭawə́l) مص. مت. ۱) ټاټ ورکول، کږول؛ ۲) ناز ورکول، وياړ ورکول.

**ټاټه** (ṭāṭa) ص. نب. سم، برابر، نېغ، مستقيم.

**ټاټۍ** (ṭāṭáy) ښځ.م. ۱) جوټي، للوللو - د کوچنيانو د ويده کولو لپاره يوه کليمه ده.

**ټاټي** (ṭāṭi) ص. نب. د ټاټ خاوند، ځېښتني، مغروره.

**ټاټېدل** (ṭāṭedə́l) مص. ل. کږېدل، يوه لور ته ټيټېدل، يوه لور ته کږېدل، قاتېدل.

**ټاخ** (ṭāx) نر.م. ۱) تاخت، ځغاسته؛ ۲) د ټوپک د کارتوس د خلاصېدو غږ.

**ټارپېډو** (ṭārpedó) ښځ.م. يو ډول وسله ده، اژدر.

**ټارپيلور** (ṭārpilór) ص. نر.م. وره ماکو ډوله جنګي بېړۍ ده.

**ټاره** (ṭāra) ښځ.م. خېټه، ګېډه، نس.

**ټاری** (ṭāray) نر.م. ۱) ټاری، سنګر، بالاخانه، برج؛ ۲) د نښتر ځانګه؛ ۳) د ځېږۍ ښاخ.

**ټاري** (ṭārí) ښځ.م. ترېدونکی، غړېدونکی، چټي خبرې کوونکی، چټي بول.

**ټاس** (ṭās) نر.م. ۱) ټس، د لوښي د چاودلو اواز؛ ۲) ټسه، لوی پټکی؛ ۳) اسک، شرط، پچه.

**ټاغی** (ṭāğáy) ص. نر.م. بټ سترګی، رډ سترګی، شېرا، چغر، چغر سترګی.

**ټاق** (ṭāq) نر.م. ۱) ټک، ټق، د ټوپک د خلاصېدو اواز؛ ۲) د کلک شي د ماتېدو اواز.

**ټاک** (ṭāk) ص. نر.م. ۱) ترېو، تروش، په نښه شوی پسه؛ ۲) د يوې ونې د مېوې نوم دی.

**ټاک ټال** (ṭākṭāl) ص. نر.م. ۱) ټکنی، ترهور، ترهېدلی؛ ۲) اندېښمن، وسواسي.

**ټاک ټوک** (ṭākṭūk) نر.ج. ټک ټوک، ټک پک، د کور سامان او اثاثيه، لوښي لرګي..

**ټاکر**[1] (ṭākár) ص. نر.م. عمر خوړلی، بوډا.

**ټاکر**[2] (ṭākúr) نر.م چنډری، د کوچنيانو لوبه ده.

**ټاکل** (ṭākál) مص. مت. ۱) مقررول، غوره کول؛ ۲) په نښه کول؛ ۳) ناروغ ته ټکور ورکول.

**ټاکلی** (ṭākáləy) ف. نر.م. ١) مقرر شوی، تعیین شوی، انتخاب شوی؛ ٢) په نښه شوی.

**ټاکنده** (ṭākəńda) ص. ټاکونکی، غوڅ، پرېکنده، (خبره یا دریځ).

**ټاکنده غرمه** (ṭākandağárma) ص. ښځ.م. وګ. ټکنده غرمه.

**ټاکنه** (ṭākə́na) ښځ.م. (ج. ټاکنې) غوره کونه، غوراوی، مقررونه، انتخابونه، تعیینونه.

**ټاکو** (ṭākū́) نر.م. ١) دغوا او مېښې یو ډول ناروغي ده؛ ٢) کینه ناک؛ ٣) ص. نب. تالا، چور.

**ټاکور** (ṭākór) نر.م. ١) وګ. ټاکر [٢]؛ ٢) ټکور، تبل، تب ورکول، ټکور ورکول.

**ټاکۍ** (ṭākə́y) ښځ.م. ١) کاسې، پټاک، د چنوغزې پټان؛ ٢) له وېنې ډکه تناکه؛ ٣) ادویدو، ډېر مور انسان یاحیوان؛ ٤) نښه؛ ٥) ډېډا، د بوټل سرپوښ؛ ٦) داوېو بانګې؛ ٧) پیوند، پینه؛ ٨) پټاکې، دکارتوس د اور اخستلو ځای.

**ټاکې** (ṭāké) ښځ.م. چک چکې، چکې، د لاسو پړکول، د لاسو ټکول، تاړې.

**ټاکی** (takay) نر.م. ١) ټیکه لګونکی، خال وهونکی؛ ٢) څاڅکی، قطره.

**ټال** (ṭāl) نر.م. ١) پېنګه، زانګو، ټال؛ ٢) ځنډ، تم، معطل؛ ٣) د غنې تار؛ ٤) د تلې دړ؛ ٥) تل، د لرګیو دلۍ، د لرګیو انبار.

**ټالان** (ṭālā́n) نر.م. ټالنټ، ١) د سپینو یا سرو زرو د پیسو یو مقدار؛ ٢) د یو وزن نو[م]

**ټال مټال** (ṭālmaṭā́l) نر.م. ټېل ټال، [illegible] باز[ي]، چل و فرېب، غولونه، چالاکي، چل [بازي].

**ټال مټالول** (ṭālmaṭālawə́l) مص. مت. ١) ځور[ول]، په تمه کول، چاته په یو کار کې پلمه کول؛ ٢) چل کول، غولول.

**ټال مټالېدل** (ṭālmaṭāledə́l) مص. ل. ١) څوک په تمه کېدل، څوک په اسره کېدل، په حیله او غولېدو کښېوتل.

**ټالول** (ṭālawə́l) مص. مت. ١) ځنډول، معطلول، تمول، تم کول؛ ٢) زنګول، جوټه ورکول.

**ټاله** (ṭālá) ښځ.م. (ج. ټالې) یو ځایې خرڅونه، ساپټ، په عمده ډول خرڅول.

**ټالۍ** (ṭāləý) ښځ.م. شوه، یو ډول ونه ده چې ښایسته او کلک لرګی لري.

**ټالېدل** (ṭāledə́l) مص. ل. ١) ځنډېدل، معطلېدل؛ ٢) زنګېدل، جوټه کېدل.

**ټامباري** (ṭāmbāri) ښځ.م. په چیغو چیغو ژړا، په کوکو کوکو ژړا، انګولا، کریغې، ټاټاره.

**ټامبوسی** (ṭāmbūsay) نر.م. ١) ټوسان، ګنګری، واورې غری، د واورې ګرېګری.

**ټامته** (ṭāmtá) ښځ.م. ټانته، ټانده، د جوار و یا باجرو هغه برخه چې ورې ترې ایسته شوې وي.

**ټانټس** (ṭāntás) ص. نر.م. کم عقل، بېعقل، لنډ فکری، لنډ اندی، ناپوه، شوده، ساده.

**ټانټوبی** (ṭāntobáy) نر.م. ګنه ګونه، غالمغال، غوربېږ، غوربګ، غورېږ، غورپش.

**ټانټور** (ṭāntór) نر.م. ټاندور، د ځپیاکې توتې چې په نغري کې یو ډبل له پاسه اېښودل کېږي.

**ټانچی** (ṭānčáy) ښځ.م. ټانکۍ، د اوبو ټانکۍ، هغه لوی لوښی چې اوبه یا تېل پکې ساتي.

**ټاندور** (ṭandór) نر.م. وګ. ټانټور.

**ټانک** (ṭānk) نر.م. ١) شوبله؛ ٢) هغه لوی لوښی چې تېل یا او[به] پکې لېږدي؛ ٣) د تېلو زېرمتون؛ ٤) یو ډول درنه وسله ده.

**ټانکه** (ṭānká) ښځ.م. ١) ټک، ګنډ، بخیه، بښې؛ ٢) پیوند.

**ټانکۍ** (ṭānkáy) ښځ.م. و گ. ټانچۍ.

**ټانګ** (ṭāng) نر.م. ۱) اوازه، اوچت غږ؛ ۲) موسم، وخت؛ ۳) د وزې د لنګېدو وخت؛ ٤) یوه غرنۍ مېوه ده؛ ۵) موسمي باران؛ ٦) زد، په سمندر کې د کانو جوړ شوی ځلی؛ ۷) د اوبو په منځ کې وچوبه، ټاپو، جزیره.

**ټانګاري** (ṭāngārí) ښځ.م. و گ. ټامته.

**ټانګتوره** (ṭāngturá) ښځ.م. داتوره، دمتوره، یو تریخ بوټی دی چې د درملو په ډول استعمالېږي

**ټانګر** (ṭāngár) نر.م. کنکر، کنګر، ښاروبو خوړلی د جوارو ټانټه.

**ټانګو**[1] (ṭāngú) نر. م. غرنی ناک.

**ټانګو**[2] (ṭāngó) ښځ.م. هن. Ton'go ټانګو، د ټاځکو نڅا، اسپانوی څلور ضربیزه نڅا.

**ټانګه** (ṭāngá) ښځ.م. ۱) د ناک د ونې په څېر یوه ونه ده خو مېوه یې له ناک سره توپیر لري؛ ۲) ګاډۍ، بګۍ، د سورلۍ یوه وسیله.

**ټانګۍ** (ṭāngáy) ښځ.م. ۱) یوه غرنۍ ونه ده؛ ۲) پانګۍ، پر اوږو د اوبو وړلو او ړد لرګی.

**ټانګۍ** (ṭāngáy) نر.م. اوچته هواره ځمکه.

**ټاه** (ṭāh) نر.م. کړت، خبره، ګړېده، ګړېدا.

**ټایپ** (ṭāyp) نر.م. ۱) ټاپه، خاپ؛ ۲ چاپ، مارکه؛ ۳) توکم، کهول؛ ٤) نمونه، ډول، ټیپ، مثال، ښکارندوی، سمبول؛ ۵) د ټایپ ماشین.

**ټایپوګراف** (ṭāypográf) نر.م. د توري اودنې ماشین.

**ټایپوګرافي** (ṭāypográfí) ښځ.م. د چاپ فن، د کوم څه د بیان او تعریف فن چې د علامو، نښو او رمزي نښانو په بڼه وي.

**ټایپولوجي** (ṭāypolojí) ښځ.م. ځېل یا نوړ پېژندنه، ډول پېژندنه، نښې نښانې پېژندنه.

**ټایپیسټ** (ṭāypíst) نر.م. ټایپوونکی، په ټیپ لیکوونکی.

**ټایفس** (ṭāyfás) ا. نر.م. و گ. توره تبه.

**ټایر** (ṭā́yir) نر.م. (ج. ټایرونه) ټېر، د موټر، موټرسایکل، بایسکل او نورو ربړینه پایه.

**ټایلیټ** (ṭāylít) نر.م. ۱) توالت، دځان سینګارونې مېز؛ ۲) مکان، بیت الخلا، ټټی، باس.

**ټب** (ṭab) نر.م. ۱) طشت، لګن، اوسپنیز یا کودین د لمبلو لوښی؛ ۲) ټپ، ډېران.

**ټبر** (ṭabár) نر.م. (ج. ټبرونه) خپلخانه، خاندان، قبیله، کورنۍ.

**ټبرنی** (ṭabaranáy) ص. ټبریز، قبیلوي، قبایلي.

**ټبروال** (ṭabarwā́l) ص. ټبرپال، قامپال.

**ټبرواله** (ṭabarwā́la) ا. قومپالنه، قومپالي.

**ټبکی** (ṭabakáy) نر.م. ۱) دوغل، غار، تیلی؛ ۲) مایه، د کوچنیانو د ګاټو او د مرد کیو په لوبه کې هغه کوټی چې مرد کې او ګاټې وراچوي.

**ټبوټبوک** (ṭabuṭabúk) نر.م. غرنۍ بلبل.

**ټپ** (ṭap) نر.م. تاکیدي کلیمه ده چې له صفت سره د مختارۍ په ډول راځي؛ ۲) داغ؛ ۳) پرهار، زخم ٤) د یو شي د وهلو اواز؛ ۵) ټرلی، کتاب بندول ٦) کمزوری، ډنګر؛ ۷) ډېران، ډومبوری، ټب؛ ۸) د کرېږې ونه؛ ۹) خلاص، مرګ ته نږدې.

**ټپا** (ṭapā́) ښځ.م. د ټالۍ وهلو اواز.

**ټپال** (ṭapā́l) نر.م. ۱) وار، ځل؛ ۲) ځغل، منډه، ځغستا؛ ۳) پیغام وړونه؛ ٤) استازی، ځری، ډاګي؛ ۵) د ځغلولو کار، خره یا کچرې د مزدورۍ لپاره ځغلول.

**ټپالي** (ṭapā́lí) ص. نر.م. ۱) پیغام رساند؛ ۲) خواري ایستونکی؛ ۳) خرکار، هغه خرکار چې خره د بارولو او اړولو لپاره ځغلوي.

**ټپ پت** (ṭappát) ص.م.ج. ټت پت، بې مانا، چټي، فضول، جزئي.

**ټپ ټپ** (ṭapṭáp) نر.م. ۱) قهر، غوسه؛ ۲) ددوو شیانو د وهلو غږ او اواز.

**ټپ ټپانی** (ṭapṭapā́nay) نر.م. ټپ ټپانی، الاداد، د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**ټپټور** (ṭapṭór) ص. نر.م.ج. ټپ تور، هغه څوک چې د سترګو لید یې کمزوری وي.

**ټپ ټیپ** (ṭapṭíp) ص. نر.م.ج. ۱) کمزوری، ډنګر؛ ۲) زوړ، بوډا، عمر خوړلی، سپین ږیری؛ ۳) په ملاکروپ، په ملا کوږ.

**ټپرا** (ṭaparā́) ص. نب. ۱) وېرېدلی، ډار شوی، بوږنېدلی؛ ۲) خیال ساتونکی، محتاط؛ ۳) کرکجن؛ ۴) کمزوری؛ ۵) اواره، سرګردان.

**ټپرېدل** (ṭaparedə́l) مص. ل. ۱) ړندو غوندې په وېره وېره ګام اوچتول؛ ۲) د خواخوږۍ له مخې (په کوم څه یا چا) لړزېدل، زړه ټړل؛ ۴) د چا پر تکلیف زهیرېدل؛ ۵) رېږدل، ترېدل.

**ټپړ** (ṭapáṛ) نر.م. ۱) سوندې توکر، سوندین توکر؛ ۲) هغه پړی چې د شولو ګېډۍ پرې تړي.

**ټپړا** (ṭapaṛā́) ښځ.م ۱) د کولال هغه آله چې خاورین لوښي پرې هواروي؛ ۲) ختې موښې (ګلماله).

**ټپړسو** (ṭapaṛsú) نر.م. یو ډول واښه دي.

**ټپس** (ṭapós) نر.م. ټپوس، غلیواز، کمښت، یو مردار خور مرغه دی.

**ټپساری** (ṭapsā́ray) ص. نر.م. محتاج، عاجز، مظلوم، بې وسه، ملامت.

**ټپسوری** (ṭapsúray) نر.م. و.ګ. ټپساری.

**ټپک** (ṭapák) نر.م. و.ګ. ټپاره.

**ټپکی** (ṭapakáy) ص. نر.م. ۱) سخت ناروغ؛ ۲) د پنډوس یو ډول لوبه.

**ټپګی** (ṭapgáy) نر.م. ۱) وړوکی زخم، کوچنی پرهار؛ ۲) غار، سوړه؛ ۳) خندق، کنده.

**ټپل** (ṭapə́l) مص. مت. و.ګ. ټاپل.

**ټپلن** (ṭaplán) ص. نر.م.ج. کوي وهلی، پمن مخی، ټپلی، چیک مخی، چیچکي، ګنډلمخی.

**ټپلی** (ṭapə́lay) ص. نر.م. ۱) سست، لسټ؛ ۲) خسي څاروی.

**ټپن** (ṭapə́n) نر.م. لږ سبا ناری، ناشتا، زړخوږی.

**ټپنا** (ṭapána) نر.م. و.ګ. ټپرا.

**ټپنه** (tapəna) ښځ.م. بېکاره، وزګار، لیه، لایه.

**ټپڼ** (ṭapə́n) نر.م. ۱) ګونی، ګوڼۍ، بوجۍ، خلته، بوری، جوال؛ ۲) ټپړ، پړی، رسۍ.

**ټپو** (ṭapū́) نر.م. ټاپو، برج، اتاری.

**ټپوټپ** (ṭapuṭáp) نر.م. د ټپ ټپ اواز.

**ټپوسی** (ṭapusə́y) ښځ.م. یو ډول کوتره ده.

**ټپوک** (ṭəpū́k) نر.م. (ج. ټپوکان) ۱) پوستین؛ ۲) تمانچه؛ ۳) چاپېره، چپلاخه، څاپېړه.

**ټپول** (ṭapawə́l) مص. مت. ۱) ټپ کول، بندول؛ ۲) شاباسی ورکول؛ ۳) المسول؛ ۴) وهل.

**ټپه** (ṭapá) ښځ.م. (ج. ټپې) ۱) درڅه، دریڅه، کړکۍ ۲) الندۍ، ټکۍ، د پښتو د اولسي شاعرۍ یو ډول نظم دی چې دوې مسرې لري؛ ۳) و.ګ. ټپه ۴) چاپ، مهر، نښه؛ ۵) کرامت؛ ۶) رقعه، یادښت؛ ۷) پټي؛ ۷) بیانه، ټپۍ، سیبي.

**ټپه ټغره** (ṭapaṭağára) ښځ.م. نېستي، غریبي، لوڅ لغړتوب، مخ یې خواته نه ګرځېدل.

**ټپه ییز** (ṭapayíz) ص. د ټپې، ټپې ته اړوند، مسره ییز.

**ټپی** (ṭapáy) ښځ.م. ۱) ټاپی، څپیاکه، ټپی، هغه خوشالي چې د سوځولو لپاره وچ شوې وي؛ ۲) بیانه، سیبي، بیونه.

**ټپي** (ṭapí) نر.م. زخمي، داغلی، ګایل.

**ټپی** (ṭapáy) نر.م. (ج. ټپي) ۱) خدایي خال، ټپی؛ ۲) د پښې پاد نیول، د جوړونو درد؛ ۳) په کمیس باندې د کښېدې کار.

**ټپېری** (ṭaperáy) نر.م. (ج. ټپېري) خښتې اچوونکی، خښتمال، خښتې جوړوونکی.

**ټپی مار** (ṭapaymā́r) نر.م. ګوس، منګور، کپچه مار، ورکوټی مار.

**ټپین** (ṭapín) نر.م. ټپي ټپی، ټکي ټکي، داغدار، خاپ خاپ، چوخی مخی.

**ټټ** (ṭaṭ) نر.م. ۱) چټی غږېدونکی؛ ۲) تېز، تیز.

**ټټار** (ṭatā́r) نر.م. ترتهار، چټي او عبثې خبرې.

**ټټ پټ** (ṭatpáṭ) نر.م. ۱) چټي او عبثې خبرې، اپلتې؛ ۲) ټکه پوکه، اندک شیزونه.

**ټټ ټټ** (ṭattáṭ) نر.م. ۱) دبرې خبرې، کسرتې؛ ۲) لاپې، دوزې، د وياړ او لويي خبرې.

**ټټن** (ṭətán) ص.نر.م.ج. چټیات ویونکی؛ باټو.

**ټټنګه** (ṭəṭangá) ښځ.م. یو ډول چرچنه، چنچنه.

**ټټو** (ṭatū́) ص.نب. اپلتې ویونکی، کرتو.

**ټټول** (ṭətawál) مص. مت. ۱) یو څوک په چټیاتو راوستل؛ ۲) غوېل، ناروا کار ورسره کول.

**ټټی** (ṭətáy) نر.م. ۱) دورې کوونکی، کرتن، پوچ غږېدونکی، ټټو؛ ۲) بې مغزه، بې مغزو.

**ټټې** (ṭəṭé) ښځ.ج. چټې خبرې، عبث خبرې.

**ټټېدل** (ṭətedál) مص.ل. ترتهدل، تربدل، عبث خبرې کول، ټټ ټټ کول، بکواس کول.

**ټټ** (ṭaṭ) نر.م. ۱) غورې تمې، لاپې شاپې؛ ۲) کبر، غرور، لويي؛ ۳) مس، تانبه.

**ټټار** (ṭatā́r) نر.م. (ج. ټټاران) مسګر، ټټاری.

**ټټاری** (ṭaṭāráy) نر.م. ټټمری، ټېټغه، ټغټغی، ټیغکه، ټنوغی، هغه مرغه چې باران غواړي.

**ټټاري** (ṭaṭā́ri) ښځ.م. ۱) شور، فریاد، څور، کریغ؛ ۲) مطلبي سازي، مسګري.

**ټټاري** (ṭiṭā́re) ښځ.م. شور، فریاد، څور، غوربې.

**ټټاونګ** (ṭəṭāwáng) نر.م. باټو، لاپو.

**ټټخه** (ṭaṭáxa) ښځ.م. ګوګل، سینه، ټټر، ټټی.

**ټټر** (ṭaṭár) نر.م. سینه، ټټخه، ګوګل.

**ټټرا** (ṭiṭrā́) عد.وګ. تترا.

**ټټری** (ṭatráy) نر.م. (ج. ټټري) ۱) سینه بند؛ ۲) لاپوک، غورتن.

**ټټری** (ṭaṭa...) ښځ.م. سدرۍ، واسکټ، هغه واسکټ چې په توکر کې یې مالوچ وي.

**ټټک** (ṭaṭák) نر.م.وګ. تلکه.

**ټټنګ** (ṭaṭáng) نر.م. ۱) بیابان، چول، میره؛ ۲) تش لاس، غریبي.

**ټټنګا** (ṭaṭangā́) ښځ.م. ټېغکه، یو ډول مرغه دی.

**ټټو** (ṭaṭū́) نر.م. یابو، توتو، ټیټ شان اس، باري اس.

**ټټوبه** (ṭaṭobá) ښځ.م. (ج. ټټوبې) ملنډه، خندا، پچموزه، توکه.

**ټټوګی** (ṭaṭūgáy) نر.م. (ج. ټټوګي) ورکوټی ټټو، خوار ټټو، وروکی یابو.

**ټټی** (ṭaṭáy) ښځ.م. ۱) بیت الخلا، خاک نداز؛ ۲) کاروان سرای؛ ۳) غول، دکې متیازې.

**ټټی** (ṭaṭáy) نر.م. (ج. ټټي) ۱) دورې ټوکې، پوچ ویونکی؛ ۲) بې مغز، ناپوه، بې مغزو.

**ټچ** (ṭač) نر.م. ۱) د پوکنۍ د چاودلو اواز؛ ۲) قوت، زور؛ ۳) ارزان، بې ارزښته، پرېوتی، خوار.

**ټخ** (ṭax) نر.م. د توخې غږ، د توخلې غږ.

**ټخ ټخ** (ṭaxtax) نر.م. توخېدنه، توخل.

**ټخلی** (ṭəxaláy) ښځ.م. خولی، خپلی، هغه خولی چې غوړونه پکې پټ وي، غوړ پټې خولی.

**ټخ مخ** (ṭaxmáx) ص. نر.م. تیت و پرک، خوروور، ګډوډ، تخ مخ، تس نس.

**ټخول** (ṭəxawə́l) مص. مت. و ګ. ټوخول.

**ټر** (ṭər) نـر.م. ۱) ټغ، پر، د کـولمـو د بـاد اواز؛ ۲) د چنګبني اواز؛ ۳) عبثې خبرې.

**ټراجيډي** (trājidí) ص. نب. تراژیدي، ټراژيډي؛ ۱) غم انګېزه ننداره؛ ۲) مصيبت، فاجعه.

**ټرافيک** (ṭrāfík) نر.م. ۱) ترافیک، هغه پولیس چې په سړکونو باندې د مـوټرانو د لاربښـوونې دنده لري؛ ۲) په لويو واټونو، بحـرونو او فضا کې د خـلکـو، عـرادو، الوتکـو تګ راتـګ؛ ۳) ورنه راورنه، لېږدونه، عبور او مرور.

**ټراک** (ṭarāk) نر.م. چتی، يوه وړه مرغی، چتکی، چترکی.

**ټراکټور** (trākṭór) نر.م. تراکتور، د عصري کرنې لپاره موټر ډوله ماشين.

**ټرام** (ṭrām) نر.م. ترام، ټېريم، يو ډول لوی برېښنا ګاډی چې د اوسپنې پر پټليو باندې ځي.

**ټرامبون** (ṭrāmbón) نر.م. مو. بجه خانې ته ورته د موسيقۍ يوه اله ده.

**ټرامپولين** (ṭrāmpolín) نـر.م. هغه جالي چې په اکروباتو کې کار ترې اخيستل کېږي.

**ټران** (ṭrān) نر.م. شور، ځوږ، غالمغال.

**ټرانزيټ** (ṭrānzít) نـر.م. ۱) سـفر؛ ۲) تېرېدل، پورې وتنه؛ ۳) د ګمرکي تکس له تحـويلـولو پرته د تجارتي مال تېرېدنه.

**ټرانسپورټ** (ṭrānspórt) نر. ۱) ورنه راورنه، چلونه، د تجارتي مالـونو او نورو شـيانو ورنه راورنـه؛ ۲) لارۍ، ټـرک، جهـاز، کښـتۍ، اورګاډی، الوتکه چې مسافر او مـالـونه له يوه ځايه بل ځای ته وړي او راوړي.

**ټراوو** (ṭarāwū́) ص. نر.م. ۱) ټېرن، ټرو؛ ۲) چټي غږېدونکی، عبث غږېدونکی.

**ټرای** (ṭrāy) عد. درې، درې برخې، درې چنده، په درې ډوله.

**ټرايټون** (ṭrāyṭón) نـر.م. مـو. د درېو آهنګـونو فاصله، د درېو ګامونو واټن.

**ټرای سيکل** (ṭrāysikál) نر.م. درې ارابه ييزه، هغه بايسکل چې درې ارابې لري.

**ټرای ګراف** (ṭrāygráf) ص. نر.م. متحد اللفظه درې حرفه، هغه درې توري چې يو اواز ورکړي.

**ټرای مورفيک** (ṭrāymorfík) ص. نر.م. درې وجهي، د درېو حالتو يا شکلو لرونکی.

**ټرايي** (ṭrāyí) ښـځ.م. ۱) زيار، هـاند، هـڅـه؛ ۲) ازمايښت، کتنه؛ ۳) له مـوټر چلوونکو نه ازموينه اخيستل.

**ټرپر** (ṭərpár) نر.م. اپلتې، چټي خبرې.

**ټرتاوا** (ṭartāwā́) ښځ.م. (ج. ټرتـاوې) ښغـمې، خوشحالي، مزې، چړچې.

**ټرتهار** (tratahár) نر.ج. چټي خبرې، عبث خبرې.

**ټرټر** (ṭərṭár) نر.م. سپورې ستغې خبرې، چټيات.

**ټرخاول** (ṭərxāwə́l) مص. مـت. ځان خـلاصول، بهانې کول، په چل ځان خلاصول.

**ټرسټ** (ṭrast) نر.م. (ق.ا) امانت، درايو وکالت، ترست، د شرکتونو انحصاري اتحاد.

**ټرم** (ṭarm) نـر.م. ۱) سمسټر، تاکلی وخت، دوره، موده؛ ۲) اصطلاح؛ ۳) اړيکې؛ ۴) عدد.

**ټرماټر** (ṭarmāṭár) نر.م. و ګ. ټماټر.

**ټرمپټ** (ṭrampít) نر.م. مـو. بـاجه، په موسيقۍ کې يوه بادي آله ده.

**ټرمينالوجي** (ṭarminālojí) ښځ.م. فني کليمې علمي يا فني کليمې، اصطـلاح پېـژندنه.

علمي يا فني نومونې، ټرمينولوژي.

**ټرمينل** (ṭarminā́l) ص. نر.م. د هوايي ډګر ودانۍ، د الوتکې د کښېنې يا د اوسپنې د پټلۍ پای، پای، انتها.

**ټرن** (ṭarā́n) نر.م. ۱) تيزن؛ ۲) وېرندونکی، دارن.

**ټرو** (ṭarū́) ص.نر.م. ۱) ټرن، تيزن، تيزن؛ ۲) چټي غېږدونکی، عېشي خبرې کوونکی.

**ټروپ** (ṭrūp) نر.م. تروپ، ډله، دسته، ټولی، د عسکرو يوه ډله سپاره، ګروپ.

**ټرول** (ṭarawә́l) مص. مت. ۱) په دستونو کول، اسهالول؛ ۲) بدکار ورسره کول.

**ټربيون** (ṭribyū́n) نر.م. تريبون، د وينا دريځ يا يا کرسۍ، دخبرو کولو ځای، منبر.

**ټريلر** (ṭrelā́r) نر.م. (ج. ټريلرونه) ډبه، واګون، واګن، يدک، هغه ډبه چې په موټر پورې ترل کېږي او درانه بارونه پکې وړي.

**ټريو** (ṭriyó) ښځ.م. مو. په غربي موسيقي کې درېو کسو سندرغاړو ته وايي.

**ټس**(۱) (ṭas) نر.م ۱) ګوزار، دڅپېړې غږ؛ ۲) لامل، سبب؛ ۳) پسات، چل؛ ٤) نوم، شهرت.

**ټس**(۲) (ṭus) ص.نر.م. توس، زوږ شی، خوږل شوی شی، وروست، پوده.

**ټسا** (ṭasā́) ښځ.م. ټسهار، د ټس ټس اواز.

**ټس پس** (ṭaspás) ص. نر.م. ج ۱) عبث، فضول، چټي؛ ۲) بې ثباته، کچه، هيڅ.

**ټسټ** (ṭest) نر.م. ازمېښت، امتحان، ازمايښت، محک، معيار.

**ټس ټس** (ṭasṭás) نر.م. ۱) پس پس، پسهار، ورو ورو خبرې؛ ۲) پټه ژړا، ورو ورو ژړا.

**ټس ټوس** (ṭasṭū́s) نر.م. ۱) د څه شي د ماتېدو اواز؛ ۲) ټک وټوک، جنګ جګړه.

**ټسر** (ṭásar) نر.م. (ج. ټسرونه) ۱) کچه وريښم، ساده وريښم؛ ۲) سونډې ټوکر، ټهسر.

**ټسري** (ṭasrī́) ص. نب. د ټسر، ټسرين.

**ټسک** (ṭásak) ص. نر.م. دارن، بې زړه، بېکاره.

**ټسکوری** (ṭaskorā́y) نر.م. چکيده، په ټناره کې څڅېدلي ډوډۍ، بټسورۍ.

**ټسکی** (tasakay) نر.م. ژړه غونې اواز، له غريوه ډک اواز.

**ټسکي** (ṭaski) ښځ.م. ۱) سستي، تنبلي، کهالي؛ ۲) پخوالی، پختوب.

**ټسکېدل** (ṭaskedә́l) مص.ل. ټسکی کول، ورو ورو ژړېدل، د ماشوم په سلګو ژړل.

**ټسلک** (ṭaslák) ص. نر.م ۱) بېرېدونکی، دارن؛ ۲) پسکو، پسکن، پسکاوڼ، ټسن.

**ټسمس** (ṭasmás) ص. نر.م. سست، لټ، تنبل.

**ټسن** (ṭasán) نر.م. ۱) پسکاوڼ؛ ۲) اومړی مزی، اومړی تار؛ ۳) مجازاً دارن..

**ټسو** (ṭasū́) ص. نر.م. و ګ. ټسلک.

**ټسول** (ṭasawә́l) مص. مت. ډبول، ډزول، وهل.

**ټسي** (ṭási) ښځ.م. ۱) دروغ، ۲) لاپې شاپې.

**ټسې** (ṭáse) ښځ.م. ۱) پسکی؛ ۲) مجازاً ډوزې، لاپې، دروغ، غورې.

**ټسېدل** (ṭasedә́l) مص. ل. ډزېدل، ټکېدل، وهل کېدل، غرېدل، ډبېدل.

**ټغ** (ṭaǧ) نر.م. ۱) دسترګو پورتنی پرده؛ ۲) شنه قبا؛ ۳) شين ټاغی، ديوه مرغه نوم؛ ٤) بانه؛ ٥) بټې سترګې؛ ٦) د چرګ د نيولو د وخت اواز.

**ټغر** (ṭaǧár) نر.م. ۱) ګليم؛ ۲) د پښتنو د يوې ټبې نوم؛ ۳) يو ډول وله.

**ټغره** (ṭaǧára) ښځ.م. ۱) و ګ. ټيه ټغره؛ ۲) ټغر قوم ته منسوبه ښځه، د ټغر مؤنث شکل.

**ټغکی** (1) (ṭigakáy) نر.م. و گ. توغکی.

**ټغکی** (2) (ṭuǧakáy) نر.م. ۱) وگ. ټغکی (1)؛ ۲) بوکری، نشه یې، په دچه کې، په غوره کې.

**ټغل** (ṭaǧə́l) مص.مت. ۱) دوکه کول، تېر وېستل؛ ټگېیل، ټگل؛ ۲) ټغول.

**ټغلی** (ṭaǧálay) مف. نر.م. ۱) دوکه شوی، تېر ایستی؛ ټگېیلی؛ ۲) ټغولی.

**ټغمغ** (taǵmag) نر.م. سخت والگی، سخت زکام.

**ټغن** (ṭaǧán) ص. نر.م. ۱) دارن؛ ۳) شو. کزونکی، ځورن؛ ٤) توخېدونکی، توخن.

**ټغول** (ṭaǧawə́l) مص. مت. ۱) پرچرگې باندې د ټغ ټغ اواز کول؛ ۲) ځورول، تنگول.

**ټغهار** (ṭaǧahā́r) نر.م. د چرگ د ټغ ټغ اواز.

**ټغېدل** (ṭəǧedə́l) مص. ل. ۱) چرگ د ټغ ټغ اواز کول؛ ۲) ځورېدل، کړېدل، تنگېدل.

**ټغېده** (ṭəǧedə́) نر.ج. ۱) ټغاری کونه؛ ۲) کرتې پرتې کونه؛ ۳) تږېده.

**ټقار** (ṭaqā́r) نر.ج. ۱) ترپې، ترپهار؛ ۲) ټکهار.

**ټقول** (ṭaqawə́l) مص. مت. ۱) جزا ورکول، ډبول؛ ۲) کنځا کول؛ ۳) محکومول، ملامتول.

**ټک** (ṭak) نر.م ۱) د ټوپک ډز؛ ۲) د کوم شي د لوېدو اواز؛ ۳) د ښاروپو یوه ناروغي ده؛ ٤) گنډ؛ ۵) وار؛ ٦) برید، پوله؛ ۷) پ. ک. د حد مانا لري، د ټک احترام په قبیله کې د هر چا ژمنه ده؛ ۸) پلرنی میراث یا ځمکه؛ ۹) د ختکیو د کرلو ځاي؛ ۱۰) هغه لرگی چې په سیوري سره یې وخت معلوموي؛ ۱۱) اعتراض؛ ۱۲) گوزار؛ ۱۳) په حلق او ستوني کې دانه؛ ۱٤) کوک، ټکونه، بخی؛ ۱۵) ټاکو.

**ټکا** (1) (ṭakā́) ښځ.م. ټکار، ډزهار.

**ټکا** (2) (ṭukā́) ښځ.م. ټوکېدنه، شنه کېدنه، سروهنه.

**ټکارکی** (ṭakā́rkay) نر.م. وچه مېږه، وچ ډنبېت.

**ټکاله** (ṭakā́la) ښځ.م. توکه، توقه، مسخره؛ د (توکې) بیا ځلې (تکراري) ترند دي.

**ټکالي** (takā́lī) ص. نب. توکي، توکمار.

**ټکان** (ṭakā́n) نر.م. ۱) نوک وهل، نوک خوږونه، تېندک وهنه، د اس یا د بل حیوان تېندک؛ ۲) جړک، ټک، شور خوړل، زنگېدنه.

**ټکانگر** (ṭakāngár) نر.م. دبې، د جوارو د ټکولو لرگی، د انگی، د جوارو کوتکی.

**ټکانه** (ṭakāná) ښځ.م. (ج. ټکانې) ۱) اندازه، حد؛ ۲) تیکانه، پته، ادرس، د اوسېدو ځای.

**ټکانه** (ṭikāná) ښځ.م. (ج. ټکانې) ۱) تیکاو، آرام، دمه ځای؛ ۲) د اوسېدو ځای، دېره، ناحیه.

**ټکاو** (ṭikā́w) ښځ.م. ایسارتیا، ایساربدنه، ځای پر ځای کېدنه.

**ټکاوېدل** (ṭikāwedə́l) مص. ل. مېشتېدنه، دېره کېدل، ځای پر ځای کېدل.

**ټک پرک** (ṭakparák) نر.م. د مړز اواز.

**ټک په ټک** (ṭakpaṭák) ق. وار دواره، سملاسي، له واره، ژر ترژره.

**ټکټ** (ṭikét) نر.م. تیکس، ټکیس، لکه د سینما، الوتکې، سروېس او ...

**ټکټ پولي** (ṭiketpulí) ښځ.م. اق. ټکټانه، گټه اخیستل، ربح، بهره، سود، انترسټ، هغه مبلغ چې د بانکې د استعمال پر ځای تادیه شي.

**ټک ټک** (ṭakṭák) نر.م. ۱) د گړی اواز؛ ۲) د دوو شیانو له یوه بل سره د لگېدو اواز.

**ټکټکانکه** (ṭakṭakānáka) ښځ.م. ۱) ټکټکانې، د کوچنیانو یو ډول لوبه؛ ۲) یو ډول چینجی.

**ټکټکانه** (ṭakṭakā́na) ښځ.م. ۱) ټکټکی، ټکټکه، هغه لرگی چې د ژرندې پر پله لگېږي

او ټکهار کوي؛ ۲) ټکټکنی، هغه مرغۍ چې د ونې ده ټکوی او چینجی ترې راوباسي او خوري.

ټکټکانی (ṭakṭakānáy) نر.م ۱) و گ. ټکټکانه ۲) د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

ټکټکه (ṭakṭaká) ښځ.م. میده بخی، پټه بخی، سکزی.

ټکټکی (ṭakṭakaý) نر.م. ۱) و گ. ټکټکانه؛ ۲) ډګډکی، ټپټپی، موټر سایکل.

ټکټکۍ (ṭakṭakə́y) ښځ.م. ۱) و گ. ټکټکانه؛ ۲) یو ډول مرغۍ ده.

ټک ټوک (ṭaktū́k) نر.م. ۱) پرې پرې؛ ۲) دزې، خال خال دزې؛ ۳) سامان برابرول، تیاری؛ ٤) ونډې ونډې، برخه برخه.

ټکټیک (ṭaktík) نر.م ۱) عس. تاکتیک، جګړه پوهنه، د محاربې د اجراء هنر؛ ۳) تدبیر، طرح، تکنیک، مانوره.

ټکر (ṭakár) نر.م. ۱) ټکره، دغره؛ ۲) بُدرې، تیندک؛ ۳) دوکه؛ ٤) نقصان؛ ٥) خرکاري؛ ٦) سو، بېخل، پوښتنه، بند.

ټکرویې (ṭakarwayáy) ا. ورته، مشابه، اتفاقي لفظ، له بلې ژبې سره د یوې ژبې د کوم ویې تصادفي یو رنګي.

ټکرې (ṭakaré) نر.م. ۱) هغه شوک چې د بل چا غم ورسره نه وي؛ ۲) هغه شوک چې له خرکارانو سره کار کوي.

ټکری (ṭikráy) نر.م. (ج. ټکري) پورنی، پړونی، لوپټه، څادر، مجازاً د ښځې په مفهوم راځي.

ټکس (ṭiks) نر.م. (ج. ټکسونه) مالیه، مالیات، باج، خراج.

ټکسال (ṭaksā́l) نر.م. ضرابخونه، دارالضرب، د سکې وهلو ځای.

ټکسره (ṭaksára) ښځ.م. (ج. ټکسرې) هغه مرغۍ چې پر سر یې داغ وي.

ټکسری (ṭaksaráy) ص. نر.م. (ج. ټکسري) بې شرم، بې حیا، سپین سترګی.

ټکسي (ṭiksí) ص.نب ۱) هغه موټر چې په پیسو خلک وړي راوړي؛ ۲) بدکاره سړی یا ښځه.

ټکک (ṭakák) ص. نر.م. بېخي ډک، تر خولې ډک، تر مورګو ډک.

ټککه (ṭakáka) ښځ.م. ټک، ټکک، د یوم یا بېل پرستۍ د پښې ایښودلو لپاره لګېدلی لرګی.

ټک لاس (ṭaklā́s) ص. نر.م. ۱) ټکره، چالاکه؛ ۲) ننبه ویشتونکی؛ ۳) زرور، ورانکاری کوچنی (ماشوم).

ټک له ټکه (ṭaklaṭáka) ق. ۱) ټک په ټک، له ټکه، په ټکي، سملاسي؛ ۲) ناڅاپي مرګ.

ټکن (ṭakán) ص. نر.م. ټکی ټکی، ټکي ټکی، خالخالي، چکې چکې، دانې دانې.

ټکنده (ṭakandá) ص. ښځ.م. له ګرمۍ څخه سره شوې، له ګرمۍ نه ایشېدلې، د غرمې ستاینوم ټکنده غرمه.

ټکنه (ṭakaná) ښځ.م. مُهر، ټاپه.

ټکنی (ṭakanáy) ص. نر.م ۱) دار شوی؛ ۲) زړغی، دوه زړی؛ ۳) ټپ سوری، مظلوم.

ټکنۍ (ṭakanə́y) ص. ښځ.م. ټکنده غرمه.

ټکنیک (ṭakník) نر.م. تکنیک، تخنیک، په هر فن یا هنر کې د اداکولو قاعده.

ټکڼه (ṭakaṇá) ښځ.م. و گ. ټکنده.

ټک و پټری (ṭakopatráy) ص. له واره، ټکوپو، سملاسي.

ټکوپو (ṭakupū́) ق. ټک له ټکه، وار له واره، سم له لاسه، نابېره، ناګهانه، ناڅاپه.

**ټک وټوک** (ṭakuṭū́k) نر.م. ١) يو له بله سره دزې کول؛ ٢) ټکهار، ډزهار، ډزونه.

**ټکوچ** (ṭakū́č) نر.م. ګنډنه، ګنډل، ګنډون، د تنې پر ځای ټک ورکونه.

**ټکور** (ṭakór) نر.م. ١) تب، تپ ورکونه؛ ٢) جزا ورکونه؛ ٣) زيان ور رسونه.

**ټکورول** (ṭakorawə́l) مص. مت. ١) تبل، تپل، تودول؛ ٢) زيان وررسول، تاوان ور اړول.

**ټکورېدل** (ṭakoredə́l) مص. ل. ١) ټکور کېدل، تبل کېدل؛ ٢) تاواني کېدل، زيانمنېدل

**ټکول** (ṭakawə́l) مص. مت. ١) وهل، ډبول؛ ٢) کوټل؛ ٣) ټک ورکول، چيچل؛ ٤) خالونه وهل، ټيکه لګول؛ ٥) څبول، څنډل؛ ٦) څپل؛ ٧) خصي کول.

**ټکونی** (ṭakunáy) نر.م. مېټی، ټکوونی، د ژرندې د پلونو تېره کوونکی.

**ټکوڼ** (ṭakū́ṇ) نر.م. ١) د کوچنيانو يو ډول لوبه؛ ٢) بيا زرغونېدنه، سروهنه.

**ټکوونکی** (ṭakawū́nkay) فا. نر.م. ١) وهونکی، ٢) کوټونکی؛ ٣) د فصل داندې بېلوونکی.

**ټکوونی** (ṭakawū́n ay) نر.م. ١) د ډول لاستی، دبی، د ټکولو آله؛ ٢) د ټکېدو ور، ننګونی.

**ټک وهل** (ṭakwahə́l) مص.مت. ١) څنډل، څبول، ټکول؛ ٢) منډل، ننه ايستل؛ ٣) تنې پورې کول؛ ٤) چيچل.

**ټک وهلی** (ṭakwahə́lay) مف. نر.م. ١) په څمکه يا دېوال کې مېخ يا موږی ننه ايستلی؛ ٢) په ستن او سپنسې سپين کې (تنې) الګولی؛ ٣) څنډلی؛ ٤) الړې ويشتلی؛ ٥) تاواني کړی.

**ټکه** (ṭaká) ښځ.م. (ج. ټکې) غرني وزه، غرڅه، غرڅنی لکه ښوی، سېګه، سيږه.

**ټکه** (ṭáka) ښځ.م. (ج. ټکې) ١) نيمه انه، پېره پخوانی سکه چې له دوو پيسو سره برابره وه؛ ٢) تندر؛ ٣) ناڅاپي بلا؛ ٤) دښمني؛ ٥) کرکه نفرت، پتروک؛ ٦) بغض، کينه؛ ٧) د مردکېو لوبه، د ټيکانو لوبه؛ ٨) چکچکه.

**ټکهار** (ṭakahā́r) نر.ج. ټکه ټوکه، د ټوپکو پرله پسې ډزې، د ټوپکو ډېډې بار.

**ټکه ټوکه** (ṭakaṭū́ka) ښځ.م. ١) ټاک ټوک، لوبې کودې؛ ٢) تياری؛ ٣) متقابلې ډزې.

**ټکه چال** (ṭakačā́l) نر.م. خوب زنګوونکی.

**ټکی** (ṭə́kay) نر.م. ١) خال، خاپی، خاپ، داغ؛ ٢) نقطه؛ ٣) حرف، توری؛ ٤) کلېمه، لغت؛ ٥) څاڅکی؛ ٦) ديوې خبرې ثبوت؛ ٧) غيرت ٨) د يوې جلدې ناروغۍ نوم.

**ټکۍ** (ṭəkə́y) ښځ.م. ١) بخی، انځور ٢) نښه؛ ٣) د پښې تلی؛ ٤) د ډوډۍ يا لمر ټيکلی؛ ٥) الندی، ټکی؛ ٦) کرس کرس خندا؛ ٧) د مچوغنې ګوتړی، کاسی؛ ٨) الړمی، لړمې، هغه سره داغونه چې پر بدن راښکاره کېږي او بيا ژر ورکېږي.

**ټکيال** (ṭakyā́l) ص. ټکن، ټکيالی، ټپلی، خالدار.

**ټکي ټکي** (ṭəkíṭəki) ص. نب. چخی چخی، خال خال، ټکيالی، چکي چکي، داغ داغ.

**ټکېدل** (ṭakedə́l) مص.ل. ١) ميده کېدل، پستېدل ٢) وهل کېدل؛ ٣) ورو ورو لار وهل؛ ٤) کړه راتلل، زړه مړېدل؛ ٥) يو شي ته ګېنې نيول؛ ٦) زرغونېدل؛ ٧) توېدل؛ ٨) خسي کېدل.

**ټګ** (ṭag) ص. نر.م. (ج. ټګان) چالاک، دوکه باز، دروهي، مکار، دروغجن، ټګمار، چلولي.

**ټګل** (ṭagə́l) مص.مت. ١) ټګېيل، دوکه ورکول، ټګي کول؛ ٢) کرکه کول، نفرت کول.

**ټگمار** (ṭagmā́r) ص. نر.م. و.گ. ټګ.
**ټگماري** (ṭagmārī́) نر.م. ټګي، چل، دوکه.
**ټگنه** (ṭagə́na) ښځ.م. (ج. ټګنې) ټګي کونه، ټګينه، دوکه کونه، غولونه، تېر ايستنه.
**ټګونکی** (ṭagū́nkay) ص.نر.م. ټګ، ټګمار.
**ټل** (ṭal) نر.م. ۱) ملګري، دوست، ګډ؛ ۲) قبيله، طايفه؛ ۳) ګڼ؛ ٤) د يوه کلي يا سيمې برخه؛ ٥) چم، محلت؛ ٦) باړې، له کورو سره نېږدې ځمکه؛ ۷) دګلوګېډۍ؛ ۸) نيږدېوالی؛ ۹) حد، پوله، بريد؛ ۱۰) د لرګيو جاله.
**ټلتوب** (ṭaltób) نر.م. ټلوالی، ملګرتيا.
**ټلګی** (ṭalgáy) نر.م. (ج. ټلګي) ۱) وړوکی ټل، تلګوتی؛ ۲) ګڼ او قوي کنبت.
**ټلۍ** (ṭaláy) ښځ.م. زنګ، لکه د ساعت زنګ يا د ښوونځي.
**ټم** (ṭam) نر.م. ۱) د سپي غپا؛ ۲) ګنه ګونه.
**ټماټر** (ṭamā́ṭar) نر.م. و.گ. ټماټر.
**ټماغه** (ṭamāǧá) ښځ.م. افسري خولۍ.
**ټمباري** (ṭambārí) ښځ.م. ټمباري، بغاري، په چيغو چيغو ژړا، په کوکو کوکو ژړا.
**ټمبر** (ṭimbár) نر.م. ۱) د وداني لرګي، شاه تير، بش؛ ۲) ځته، تنه.
**ټمبکه** (ṭambáka) ښځ.م. ډيوټ، د ډېوي تاخ، د څراغ ځای؛ ۲) و.گ. ټنبکه.
**ټمبل** (ṭambál) ص. نر.م. ۱) تمبل، لټ، ناراسته؛ ۲) غټ، شورب.
**ټمبورين** (ṭamburín) نر.م. مو. زنګي دريه، دايره.
**ټمبه** (ṭambá) ص. نب. ۱) پرسېدلی، تومبيا، هغه حيوان چې خېټه يې د اغېږ تيا له لامله ډډه شوې وي؛ ۲) قبض؛ ۳) سرزوري.
**ټمبېل** (ṭambél) ص.نر.م. ټنبېل، ډډبډ، پرسېدلی.

**ټم ټم** (ṭamṭám) نر.م. ګاډی، بګی.
**ټمټمی** (ṭamṭamáy) نر.م. غزی، يو ډول مرغه دی چې اوږدې پښې لري او په اوبو کې ژوند کوي.
**ټمټی** (ṭamṭáy) ص. نر.م. ۱) ټيټکی، لنډی، ټيټ قدی؛ ۲) لنډ لاستی ببل، بېلچه.
**ټمټېری** (ṭamṭeráy) نر.م. لنډی، مندری، لنډقدی.
**ټمټېل** (ṭamṭél) نر.م. ۱) ښارې، د يوې مرغۍ نوم دی؛ ۲) دخلکو ګڼه ګونه، ازدحام.
**ټمول** (ṭamawə́l) مص. مت. ۱) غپول، سپي په غپا راوستل؛ ۲) په اپلتو لګيا کول.
**ټمېدل** (ṭamedə́l) مص. ل. ۱) غپېدل، غپ غپ کول؛ ۲) فضول غږېدل، چټيات ويل.
**ټن** (ṭon) نر.م. (ج. ټنونه) د وزن او تول يوه تاکلې پيمانه ده چې زر کيلوګرامه کېږي.
**ټنبکه** (ṭanbáka) ښځ.م. ۱) دمچيو ډمبکی، د بمبرو ډمبکی؛ ۲) ګبين، ګبينه، د غلوزو کندو، ګبينو د مچيو ټمبکه (کندو).
**ټنټه** (ṭanṭá) ښځ.م. ۱) ټانټه؛ ۲) بلوا، الدګوله، اړودوړ؛ ۳) پتنه، شخړه.
**ټنجه پنجه** (ṭanjapánja) ښځ.م. ناز، نخره، مکيز.
**ټنډ** (ṭanḍ) ص. نر.م ۱) پړسېدلی، شورب؛ ۲) مرور ۳) نا خصي شوی غويی؛ ٤) سخت زړی، بېرحمه؛ ٥) بدمعاش؛ ٦) و.گ. ټنډان.
**ټنډان** (ṭanḍā́n) ص. نر.م. ج. يو ډول کندهاري انګور دي.
**ټنډتوب** (ṭanḍtób) نر.م. ۱) ټنډوالی، ډډوالی، غټوالی؛ ۲) بدمعاشي، نفس پالنه.
**ټنډتوت** (ṭanḍtū́t) نر.م. يو ډول توت دی.
**ټنډتيا** (ṭanḍtyā́) ښځ.م. بدمعاشي، نفس پالنه، بداخلاقي، وران کاري.
**ټنډر** (ṭanḍár) ص. نر.م. وران، ويجاړ، شاړ.

**ټنډغرکی** (ṭandğarkáy) ص. نــر.م. ۱) خېتنا، خېتور؛ ۲) چاغ هلک؛ ۳) اینده، سخـونډر، ځوان خوسی چې خصي شوی نه وي.

**ټنډکی** (ṭandakáy) ص. نر.م. غونډ منډ، ګردی منډری، ډډ خېټی.

**ټنډکۍ** (ṭandakə́y) ښځ.م. وړه لښته، چوکه.

**ټنډو** (ṭandū́) ص. نر.م. ۱) پړسېدلی، غټ خېټی؛ ۲) خېټو، ګېډو، ګېډپال.

**ټنډور** (ṭandór) نر.م ۱) په تودو شګو کې د جنغوزو پخول، په بټ کې د چنو او جنغوزو نیـنې کـول؛ ۲) امبار، امبالی؛ ۳) ځوږ شور، ژړا، ویر.

**ټنډورول** (ṭandorawā́l) مص.مت. ۱) په بټ کې ځنغوزي وریتول، دچنو نینې کول؛ ۲) انبارول، امبارول، دلی کول، کوټه کول.

**ټنډول** (ṭandawál) مص.مت. ۱) پړسـول، ډډول، ډکول؛ ۲) په ناروا ډول پردی ښځه بلاربول.

**ټنډویک** (ṭandwík) نر.م. ګـډوزی، کاربوزی، د بټې ګوټې او دشهادت دګوتې ترمنځ فاصله.

**ټنډه** (ṭánda) ښځ.م. (ج. ټنډې) ۱) پړسېدلې، ډډه؛ ۲) ورله خره؛ ۳) بلاربه ښځه، بدلمنې ښځه؛ ۴) ټنډه ټمبه، هغه حیوان چې د زیات خـوراک له لامله وپړسیږي؛ ۵) ټندی، وچولی، وچولی.

**ټنډه** (tindá) ښځ.م. ۱) یو ډول سابه؛ ۲) پړسېدلی منډری سړی.

**ټنډه خره** (ṭandaxrá) ښځ.م. رنده خره، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**ټنډه لیک** (ṭandalík) نر.م. تندي لیک، برخلیک، تقدیر، ازل.

**ټنډۍ** (ṭandə́y) ښځ.م. لښته، چوکه.

**ټنډۍ** (ṭandə́y) ښځ.م. د کـبانو یو ډول نسـل دی چې زیاتره واړه او تور رنګ لري.

**ټنډېدل** (ṭandedál) مص.ل. ۱) پړسېدل، ډډېدل؛ ۲) بلاربېدل، حامله کېدل، امیندوربېدل.

**ټنډېل** (ṭandél) نر.م. غار، تونل، سرنګ.

**ټنګ** (ṭang) نر.م. ۱) د ترنګ غږ؛ ۲) دساز اواز.

**ټنګا** (ṭangā́) ښځ.م. پر له پسې غږ.

**ټنګ ټکور** (ṭangṭakór) نـر.م. مجلس، سرود، ساز او اواز.

**ټنګ ټونګ** (ṭangṭúng) نر.م. ۱) د ساز او سرود غږ؛ ۲) د فلزي لوښو د جنګېدلو اواز.

**ټنګول** (ṭangawál) مص.مت. ۱) ترنګول، درنګول؛ ۲) د فلزي لـوښو و بله جنګـول؛ ۳) ساعت په زنګ راوستل.

**ټنګه** (ṭangá) ښځ.م. ۱) په افغانستان کې د یوې سیکې نوم و چې د شلـو پیسو یا ایکیو سره برابره وه؛ ۲) پانګه، سرمایه، شتمني.

**ټنګه سری** (ṭangasáray) ص. نـر.م. پیسه سړی، پیسه دوست، پر پیسو مین، کنجوس.

**ټنګېدل** (ṭangedál) مص.ل. ترنګېدل، شرنګېدل، درنګېدل، کرنګېدل، شرنګېدل.

**ټنن** (ṭanán) ص. نر.م. ۱) دارن؛ ۲) دروغجن.

**ټوبخی** (ṭobaxáy) نـر.م. د شګو کوټه یا انبار.

**ټوبرکلوز** (ṭobarklóz) ص. نـر.م. T.B, t.b. سل، نری رنځ، ټي بي.

**ټوبکی** (ṭubakáy) نر.م. ۱) غار، سوړه، سوری؛ ۲) کوتی، کنده، کندری، دوغل.

**ټوبه** (ṭubá) ښځ.م. ژوره ځمکه، ډنډه ځمکه، وسته.

**ټوبی** (ṭubáy) نر.م. د شګو ډېری چې ځلور خواوې یې شاړه او پاس سر یې شین وي.

**ټوپ**[1] (ṭup) نر.م. ۱) ټیوب، نرم ربړي شی چې د ټایر په منځ کې له هـوا ډکه دکېږي؛ ۲) نېټه، مقرر وخت، ټاپی، ټاکلی وخت.

**ټوپ**(۲) (ṭop) نر.م ۱) ورت، جست، خېز؛ ۲) ډېرۍ؛ ۳) لويه غونډۍ، لويه ټوپۍ؛ ۴) د جوارو دلۍ، د شولو دلۍ.

**ټوپال** (ṭūpā́l) نر.م. (ج. ټوپالونه) ځاله، منځاله، جاله، منځوله.

**ټوپ ټپانی** (ṭopṭapā́nay) نر.م. د منډې سيالي، د ټوپونو سيالي، ټوپلوبه.

**ټوپځن** (ṭopján) ص. نر.م. ټوپ کوونکی، ټوپ وهونکی، ځانګځن، ورټونکی.

**ټوپخن** (ṭopxán) نر.م. د خاورو ډېرۍ يا غونډۍ.

**ټوپدره** (ṭopdára) ا. ټوپتخته، د ټوپ وهلو دره.

**ټوپک** (ṭopák) نر.م. و.ګ. توپک.

**ټوپک تيار** (ṭopaktayā́r) پوځي بولۍ (قومانده)، د تيارېدو او چمتو کېدو پوځي حکم.

**ټوپکوال** (ṭopakwā́l) ص. ټوپک والا، وسله وال.

**ټوپکي** (ṭopakí) ص. و.ګ.: ټوپکوال.

**ټوپکۍ** (ṭupakә́y) ښځ.م. د کاريزه پټه برخه، په کانو سره د کاريز پوښل شوې برخه.

**ټوپل** (ṭopál) نر.م. ۱) شمبله، څوکه؛ ۲) د تاج طره (جوغه)؛ ۳) څوکه، سر؛ ۴) مص.مت. خاورې غونډۍ کول؛ ۲) ټوپ وهل، ورټل، دانګل.

**ټوپمار** (ṭopmā́r) ص. نر.م. ټوپ وهونکی، ټوپ ځن، ورټونکی، ټوپ اچوونکی.

**ټوپن** (ṭopán) نر.م. نړۍ، دنيا، جهان.

**ټوپنای** (ṭopnā́y) نر.م. مسافر، پردېس، جلاوطن.

**ټوپنی** (ṭopanáy) نر.م. ۱) د کوچنيانو يوه لوبه ده؛ ۲) سيلاني، سياح، تورست.

**ټوپنۍ** (ṭopanә́y) ښځ.م. ډېرۍ، غونډۍ، ټوپۍ.

**ټوپوګرافي** (ṭopogrāfí) ښځ.م. ۱) د ځـای او سيمې څېره، نقشه، نقشه کشي، مساحي؛ ۲) د ځايونو سمه او مشرح تشريح.

**ټوپولوجي** (ṭopolojí) ښځ.م. ځـای پېژندنه، جغرافيايي وضعيت، مکان پېژندنه.

**ټوپه** (ṭopá) ښځ.م. معجزه، عجيبه، حيرانوونکی.

**ټوپۍ** (ṭopә́y) ښځ.م. ۱) ډېرۍ، انبار؛ ۲) د چلم سرخانه؛ ۴) پټاقۍ؛ ۵) خولۍ؛ ۶) يو ډول لوبه.

**ټوپي** (ṭopí) ص. نب. ۱) ټوپ وهونکی، ټوپځن، دانګونکی؛ ۲) چالاک، تېز.

**ټوپۍ ګل** (ṭopәygwál) نر.م. د بابونې ګل، يو ډول دارو، يو ډول درمل بوټی.

**ټوټار** (ṭoṭā́r) نر.م. ټوکه ساطور، ساتول، هډګې، کوټه خره، هغه فلزي آله چې غوښې پرې ټوټې کوي.

**ټوټکه**(۱) (ṭoṭaká) ښځ.م. کاسې، د مچنوغزې پټاک، د مچوغندې پټکی، د مچلوغزې کاسې.

**ټوټکه**(۲) (ṭoṭká) ښځ.م. ۱) ټوټنی ټانی، ټوټنه، دود دستور، رسم ورواج، شفاهي طب؛ ۲) يو شمېر چارې دي چې ولسي وګړي يې د ښو ګڼ د راجلبولو او يا آيسته کولو لپاره ترسره کوي؛ ۳) هغه تحفه چې د ناوې کره وړله کېږي.

**ټوټکه مار** (ṭoṭkamā́r) ص. نر.م. ټوټه مار، ټوټکه چي، ټوټکې کوونکی.

**ټوټکۍ** (ṭoṭakә́y) ښځ.م. ۱) ټکۍ، د زنګانه سترګه؛ ۲) لرګينه کاسه، ټوټۍ؛ ۳) د کوناټي هډوکی، د ورانه هډوکی.

**ټوټه** (ṭóṭa) ښځ.م. ۱) ټوکر؛ ۲) برخه؛ ۳) اندازه، قطعه؛ ۴) سورنا، سورنۍ؛ ۵) پيوند.

**ټوټی** (ṭoṭáy) نر.م. ۱) ورون، اورخ؛ ۲) صندوق.

**ټوټي** (ṭóṭi) ښځ.م. ۱) وياړنه، ستاينه؛ ۲) بدوينه، غندنه، بده غيبدا.

**ټوټۍ** (ṭoṭә́y) ښځ.م. ۱) د لرګينه کاسه، لرګين کنډولی؛ ۲) د نلکې سر، د نل سر.

ټوټي پل (ṭoṭipál) نر.م. د يوه پيړۍ ټال، د زنګلو هغه ټال چې له يوه پيړۍ وي.

ټوټېل (ṭoṭél) نر.م. ټيټاري، ټيټمکه، ټيټغي.

ټوخ (ṭux) نر.م. ۱) ټوخه، ټوخی کونه؛ ۲) د ټوخي اواز.

ټوخل (ṭuxə́l) مص. مت. ټوخېدل، کنګېدل.

ټوخله (ṭoxə́la) ښځ.م. پوخله، شنسه ټوخله، شسنه غاړه، د ټوخي يو ډول دی.

ټوخلی (ṭoxaláy) ښځ.م. خولۍ، يو ډول خولۍ، ګرمه خولۍ، پنبه يي خولۍ، ورينه خولۍ.

ټوخول (ṭuxawə́l) مص. مت. ټوخی وروستل، په ټوخو کول، په ټوخي کول.

ټوخهار (ṭuxahā́r) نر.م. د ټوخلي يا ټوخي پر له پسې غږ، په يوه مخ ټوخېدنه.

ټوخی (ṭuxə́y) ښځ.م. ټوخی، کنګ، ټمخی.

ټوخی (ṭūxáy) نر.م. د ټوخېدلو اواز، ټوخی.

ټوخېدل (ṭuxedə́l) مص. ل ۱) په ټوخي سر کېدل، په ټوخي راتلل؛ ۲) اصطلاحاً: لـه چـا نه د څه مرستې تمه لرل.

ټوډي (ṭoḍí) ص. نر.م. ج. مو. له لس ګونو تا تونو څخه د يوه ټاټ نوم دی.

ټور (ṭur) نر.م. سياحت، دوره، ګرځېدنه، دوران.

ټوربين (ṭorbín) نر.م. توربين. پره لرونکی ماشين دی چې داوبو يا بخار په قوه ځای پرځای څرخي اود برېښنا توليدوونکې دستګاه په کار اچوي.

ټورنمنټ (ṭornamínṭ) نر.م. د اتلولۍ سيالۍ، د لوبو د سيالۍ يوه مرحله يا دوره.

ټوری[1] (ṭuráy) نر.م. دجوارو کوچنی وږی، د جوارو وړکوټی وږی، د جوارو غوټی.

ټوری[2] (ṭoráy) نر.م. لاس لونی، چلمچی، د لاس مينځلو لوښی، دوشی، لګن.

ټوري (ṭorí) ښځ.م. د ټکي د کلمې تکراري ترکيب د تاکيد په ډول راځي، لکه: ټکي ټوري.

ټوس (ṭus) ص. نر.م. ج. ۱) وروست، خوسا، ټس؛ ۲) د ټس تکراري ترکيب.

ټوسان (ṭosā́n) نر.ج. هغه واوره چې د ږلي په شان غونډه او ګردې وي.

ټوغ (ṭuğ) ص. نر.م. ۱) راکوږ، کـوپ؛ ۲) غرور؛ ۳) مغرور، کبرجن؛ ٤) غلی، عاجز.

ټوغ ټوغ (ṭuğ ṭúğ) نر.م. ۱) ډېر کوږ، ډېر کروپ؛ ۲) ډېر متکبر؛ ۳) ډېر غلی، ډېر عاجز.

ټوغک (ṭoğák) نـر.م. ټيغـی، ټيـغکی، ټغی، توغکی، د چرګانو يو ډول ناروغي ده.

ټوغکی (ṭ(u,o)ğakáy) نر.م. و.ګ.: ټوغک.

ټوغول (ṭuğawə́l) مص. مت. ۱) ټيټول، کږول، کـوپول؛ ۲) مـاتې ورکـول؛ ۳) تر لاس لاندې راوستل.

ټوغېدل (ṭuğedə́l) مص. ل. ۱) ټيټېدل، کږېدل، کوپېدل؛ ۲) ماتې خوړل، تر لاس لاندې کېدل.

ټوقه (ṭóqa) ښځ.م. (ج. ټوقې) ټوکه، مسخره.

ټوقه ټکاله (ṭoqaṭakā́la) ښځ.م. ټوکې ټکالې، ټوکه ټکاله، ټوکې او مسخرې کونه.

ټوک[1] (ṭok) نر.م. ټينګه او بدل شوې ټوټه، کلکه ټوکـر؛ ۲) نری اواز؛ ۳) ټاک، تـريو خـوند؛ ٤) څير؛ ٥) ټوکنه، اعتراض، نيوکه.

ټوک[2] (ṭuk) نـر.م. ۱) ټوټه، برخـه؛ ۲) دکتاب جلد؛ ۳) د دوډۍ ټوټه.

ټوکا (ṭukā́) ښځ.م. ۱) ټوکېدنه، شنه کېدنه؛ ۲) يو ډول شسخ چينجی.

ټوکار (ṭokā́r) نر.م. ۱) کرکه؛ ۲) ټوکه، ساتول.

ټوکان (ṭokā́n) نر.م. و.ګ. ټاپوری.

ټوکبندي (ṭukbandí) ا. مخبندي، صفحه بست.

**ټوک ټوک** (ṭukṭúk) ص. نب. ټوټې ټوټې، پارچې پارچې.

**ټوک خور** (ṭukxór) ص. نر.م. (ج. ټوک خواره) ځېره خور، سوالګر، ټوک ټولوونکی، وظیفه خور.

**ټوکر**(۱) (ṭokár) نر.م. ۱) قفس، پنجره، ټوکړ؛ ۲) ص. نر. م. زوړ، بوډا، ګوبیږ، ډوکر.

**ټوکر**(۲) (ṭukár) نر.م. ټوټه، ټوکړه، رخت، کپړه.

**ټوکر ټوکر** (ṭukarṭukar) ص. نسب. ټوټې ټوټې، ذرې ذرې، پارچې پارچې.

**ټوکره**(۱) (ṭokrá) ښځ.م. (ج. ټوکرې) ټوکرۍ، غټه ټوکرۍ، سکرۍ، شکرۍ، غټه شکرۍ.

**ټوکره**(۲) (ṭukrá) ښځ.م. ټوټه، پارچه، ذره.

**ټوکری** (ṭokráy) نر.م. ۱) ټوټه، پارچه، ریښکی؛ ۲) ټیکری، زړوکی، پرونی.

**ټوکرۍ** (ṭukráy) ښځ.م. شکرۍ، سکرۍ، ټوکره.

**ټوکري ساز** (ṭokrisáz) ص. ټوکرۍ جوړوونکی، ټوکرۍ سازوونکی.

**ټوکرېیل** (ṭukreyə́l) مص.مت. ټوک ټوک کول، ټوټې ټوټې کول.

**ټوکړ** (ṭokáṛ) نر.م. قفس، کپس، پنجره، ټوکر.

**ټوکړه** (ṭukṛá) ښځ.م. ۱) ټوټه، پارچه، ټوکره؛ ۲) رخت، ټوکر.

**ټوک زوت** (ṭokzwát) نر.م. ټوک جی، جلتو تاق، ټوک جت، جفت و طاق.

**ټوکل** (ṭukə́l) مص. مت. ۱) کوټل، وهل؛ ۲) د چا خبره تالا کول، اعتراض کول؛ ۳) ځیرل، غوځول ۴) ځای پر ځای سوری کول.

**ټوکلی** (ṭukláy) نر.م. په لاس اوبدل شوی شی، په لاس ګنډل شوی شي.

**ټوکمار** (ṭokmā́r) ص. نر.م. ټوکي، ټوقمار.

**ټوکنه** (ṭukə́na) ښځ.م. ۱) ټکونه، وهنه، څپنه؛ ۲) نیوکه؛ ۳) څیرنه، پرې کونه؛ ۴) ځای پر ځای سوری کونه

**ټوکول** (ṭūkawə́l) مص.مت. ۱) شنه کول، زرغونول ۲) روزل، تربیه کول.

**ټوکونی** (ṭukunáy) نر.م. ډډوډی ټیکلی، څکی، وړه ټیکلی.

**ټوک و ټول** (ṭuk-o-ṭól) (پوځي نومونه) جزوتام.

**ټوکه**(۱) (ṭóka) ښځ.م. ۱) مسخره، ملنډه؛ ۲) هډ کپ، ټوکیا، ساتول، ساطور.

**ټوکه**(۲) (ṭuká) ښځ.م. ۱) ټیکه غوا، هغه غوا چې د لوشلو په وخت کې پې تښتوي؛ ۲) د کاریز ځا؛ ۳) یو ډول مرغۍ (چنچنه)؛ ۴) سوری.

**ټوکی** (ṭūkay) نر.م. ۱) رخت، ټوکر؛ ۲) یو ډول تور رنګی بوټی دی؛ ۳) ساتول، ساتور.

**ټوکي** (ṭokí) ص. نب. ۱) ټوکمار؛ ۲) ټان، ټوکی؛ ۳) نر.م. بزاز، رخت خرڅوونکی.

**ټوکیا** (ṭukyā́) ښځ.م. ساتول، ساطور، هډکپ.

**ټوکې ټکالې** (ṭokeṭakālé) ښځ.ج. مسخرې، ټوکې، ټوکې وشتې.

**ټوکې وشتې** (ṭokewašté) ا. ټوکې ټکالې، ټوکې ټکړې.

**ټوکېدل** (ṭūkedə́l) مص. ل. ۱) زرغونېدل؛ ۲) د بدن کوم ځای د لګېدو په اثر شین کېدل؛ ۳) هغه ټوکر چې د زړېدو له امله دوړېږي؛ ۴) ټوېېدل، رژېدل؛ ۵) امبار کېدل، دوړېدل.

**ټول**(۲) (ṭol) ص. نر.م. ج. ۱) واړه، ګرد، غونډ، درست؛ ۲) راغونډ، راټول؛ ۳) ټولی، ټولګی، جمعیت.

**ټول**(۲) (ṭul) نر.م. تول، سورسانی، یو ډول ټوکر.

**ټول اوډون** (ṭoluḍūn) ا. عامه نظم.

ټولبندي (ṭolbandí) ا. ټولون، پایلنیوی، د پایلو ډلبندي.

ټولپوښتنه (ṭolpoṣtə́na) ا. عامه رایه پوښتل، عامه رایه اخیستنه، ریفرنډم.

ټولتون (ṭoltū́n) ا. پنډغالی، مجمع.

ټول ټال (ṭoltā́l) ق. ۱) تماماً، درست، له یوه سره همه واره؛ ۲) مجموعاً.

ټولزېرمی (ṭolzérmay) ا. ټولیزه (عامه) شتمني، عامه دارایي، بیت المال.

ټولګر (ṭolgár) ص. نر.م. ۱) سوالګر، سایل، ټوک ټولوونکی، ټوک غوښتونکی.

ټولګټی (ṭolgáṭay) ص. د ټولو په ګټه، عام المنفعه.

ټولګه (ṭolgá) ا. غونډ، مجموعه.

ټولګی (ṭolgáy) نر.م. ډله، ټولی، صنف، جمعیت.

ټولګیخونه (ṭolgixū́na) ا. د ټولګي کوټه، کلاس روم.

ټولګیز (ṭolgíz) ص. د ټولګي اړوند، جماعتي.

ټولګیوال (ṭolgaywā́l) ص. نر.م. هم صنف، همصنفي، دیوه ټولګي.

ټولمنلی (ṭolmanə́lay) ص. ټول خوښی، مقبول عام.

ټولنپال (ṭolanpā́l) ص. ټولنوال، ټولنپالونکی، سوسیال.

ټولنپوهاند (ṭolanpohā́nd) ټولنپوه، د ټولنپوهنې (سوسیالوجي) پوه، ښانګوال.

ټولنپوهنه (ṭolanpohə́na) ښځ.م. سوسیولوجي، علم الاجتماع، جامعه شناسي.

ټولنپوهیز (ṭolanpohī́z) ص. ټولنپوهنیز، د ټولنپوهنې اړوند.

ټولنښېرنه (ṭolancerə́na) ا. ټولنیزه څېړنه، د ټولنپوهنې څېړنه.

ټولنوتیز (ṭolanwaṭī́z) ص. اجتماعي اقتصادي.

ټولنوده (ṭolanwáda) ا. د ټولنې وده، اجتماعي رشد.

ټولنوم (ṭolnū́m) (ګر.) عام اسم، عام نوم.

ټولنه (ṭolə́na) ښځ.م. ۱) غونډه، مجلس؛ اجتماع تشکیل؛ ۲) نفوس، جمعیت؛ ٤) سره یوځای کېدنه؛ ۵) هیأت؛ ٦) چنده.

ټولواک (ṭolwā́k) نر.م. بادشاه، پاچا، باچا.

ټولواکی (ṭolwā́kay) نر.م. بادشاه، پاچا، مطلق العنان، ټولواګی، ټولواکمن.

ټولوال پښویه (ṭolwālposóya) ا. ټولیزه پا عمومي پښویه، عمومي ګرامر.

ټولول (ṭolawə́l) مص. مت. بوږول، یوځای کول، راغونډول، جمع کول، ګردول.

ټوله (ṭolá) ښځ.م. ۱) دروېزه، چړ، ګدایي، غوښتنه؛ ۲) چنده، اعانه، ګرده.

ټولی (ṭoláy) نر.م. ۱) له څو بلوکونو څخه جوړ؛ ۲) ټولۍ، جمعیت، ډله

ټولۍ (ṭoláy) ښځ.م. و ګ. ټولی.

ټولېدل (ṭoledə́l) مص. ل. ګردېدل، غونډېدل، یوځای کېدل، جمع کېدل.

ټولی مشر (ṭolaymašə́r) نر.م. د ټولي مشر، د ټولي قوماندان، تورن.

ټوم (ṭum) نر.م. ۱) ټونګ، تحریک، لمسون، پارونه؛ ۲) مشوره، مصلحت.

ټومب (ṭumb) نر.م. ۱) چوخ، چخ، چیخ، ټومبنه؛ ۲) المسون، پارونه؛ ۳) ستن وهنه.

ټومبل (ṭumbə́l) مص. مت. ۱) ټونبل، ننویستل، خنبول؛ ۲) په غابښو کې خلال وهل؛ ۳) سکوندل تحریکول.

ټومري (ṭumrí) ص. ښځ.م. و ګ. ټومرۍ.

**ټون** (ṭon) نر.م. ۱) تــون، اواز، ږغ، د اواز درجــه، لحن، د اواز کیفیت، د لیکلو یا خبرو سبک او قاعده؛ ۲) مــو. د دوو ټونو تر منځ د صوتي فاصلې واحد؛ ۳) هارمــونیــزه، د دوو شــیانو تناظر او سره لګېدل.

**ټونالېټې** (ṭonāleṭé) ښــځ.م. تونالیته، د اواز ځرنګوالی، آهنګ.

**ټونبونی** (ṭunbū́nay) نر.م. د ټونبلو آله.

**ټونټ** (ṭoníṭ) نر.م. مــو. یو ډول عصري شپېلۍ ده چې بم اواز لري.

**ټونډینه** (ṭunḍiná) ښځ.م. د جوارو وږی، د جوارو سوټکې.

**ټونګ** (ṭung) نر.م. ۱) ټونګره، نوکا [illegible] چونډۍ، سکــونډکه، چیچنه؛ ۲) مصلحــ [illegible] شــوره؛ ۳) نوټکه وررسونه؛ ٤) نشتر.

**ټونګاره** (ṭū́ngāra) ښځ.م. ۱) نوکاره، چــونډۍ، سکونداره؛ ۲) کنځا؛ ۳) منبوکه وهل؛ ٤) په خوشکه کېدنه؛ ٥) لمسون، تحریک، پارونه.

**ټونګره** (ṭūngára) ښــځ.م. ۱) ټونګــه، منبــوکه؛ ۲) منبوکه وهنه، ټونګه وهنه.

**ټونګرېیل** (ṭūngreyā́l) مص. مت. ۱) نوکــاره لګول، ټونګــاره لګول سکــونډل؛ ۲) په ټېټه تــاوان رســول؛ ۳) په منبوکه وهل، په ټونګه وهل؛ ٤) قهرول، عصبي کول؛ ٥) کنځا کول.

**ټونګل** (ṭūngál) مص. مت. ۱) ټونګــه ورکــول، نوکارول؛ ۲) څوک په ګوته یا اشاره خبــرې ته متوجه کول؛ ۳) تحریکول.

**ټونګوره** (ṭungóra) ښــځ.م. اینګــه، انګه، هغه ښځه چې د ناوې سره د زوم کورته ځي.

**ټونګه**[۱] (ṭungá) ښځ.م. ۱) منبــوکه، ټونګــاره؛ ۲) چیړ، بلوسه؛ ۳) ځوررونه، په قهرونه.

**ټونګه**[۲] (ṭónga) ښځ.م ۱) دګــوتې بند؛ ۲) د پښې تله، د پښې تلی.

**ټونیک** (ṭoník) ص. نر.م. ۱) طب. مقــوي دوا، توان بښــونکی؛ ۲) مــو. په اوازونو او تــونــونو اړوند، د ټون، د اواز.

**ټې** (ṭe) ښــځ.م. ۱) د «ټ» تــوري اواز؛ ۲) مــو. د اووم ټون نوم چې «سي» هم ورته وايي.

**ټیپ**[۱] (ṭip) نر.م. ۱) په خښتو کې د سیمنټو لګونه، د سیمنټو لېټی؛ ۲) ټایپ، سمبول، نمــاینده، ډول، نمونه؛ ۳) ټوپ، نېټه، ټاکلی وخت.

**ټیپ**[۲] (ṭayp) نــر.م. ټایپ، ټایپ رېټــر، د لیکلو ماشین؛ ۲) وګ. ټېپ ریکارډر.

**ټېپ**[۳] (ṭep) نر.م. ۱) له ټوکر، کاغذ، پلاستیک څخه جوړه اوږده، کم بره فیته؛ ۲) ټوټې، نلکه، نل؛ ۳) د ټېپ ریکارډر د اواز ثبتولو فیته.

**ټیپ ټاپ** (ṭipṭā́p) نر.م. ۱) ښــایست، ښــکلا، ډول، سینګار؛ ۲) ځان ښوول.

**ټېپر** (ṭepə́r) نر.م. ج. شلغم، منګړیته، بنګړیته.

**ټېپرکی** (ṭeparkáy) نــر.م. ټیټکی، ټېمــرکی، مندری، غونډکی، ټیټ غونډې سړی.

**ټېپ ریکارډر** (ṭeprikārdár) نــر.م. ټــایپ، ټېپ، د اواز ثبتولو آله، دضبط صوت وسیله.

**ټېپی** (ṭepáy) ښځ.م. ۱) ججوری، ججــوره، چیــر جېره، جاغور؛ ۲) یو ډول کښېدنه.

**ټیټ** (ṭiṭ) ص. نر.م. ۱) کوز، کښته؛ ۲) لنډ، مندری سړی؛ ۳) کوږ؛ ٤) ملامت، پړ.

**ټیټاری** ([illegible]áy) نر.م. ټیــغی، ټټغی، ټیغکی، ټیټه [illegible] یو ډول مرغه دی.

**ټیټاکه** (ṭiṭā́ka) ښځ.م. ازغکی، اغزکی، د کنجغرې په ډول یو غرنی بوټی دی.

**ټیټاکی** (ṭiṭā́kay) نر.م. څمکه، جایداد، د وتر.

**ټيټال** (ṭiṭā́l) نر.م. ۱) چاپلوسي، غوړه مالي؛ ۲) پستي؛ ۳) مکر، فریب، ټګي، چل.

**ټيټالی** (ṭiṭāláy) ص. نر.م. ۱) چلولي، چلباز، ټګ؛ ۲) چاپلوس، غوړه مال.

**ټېټانوس** (ṭeṭānū́s) نر.م. ۱) یو راز ناروغي ده چې له زیاتې یخنۍ څخه پیدا کېږي.

**ټيټ پاس** (ṭiṭpā́s) نر.م. ۱) چاپلوسي، غوړه مالي؛ ۲) راشه دزشه، معاشرت.

**ټيټ پيټ** (ṭiṭpíṭ) ص. نر.م. ډېر ټيټ سړی، ډېر غونډی سړی، لنډی سړی، ټيټکی سړی.

**ټيټتوب** (ṭiṭtób) نر.م. ۱) ټيټوالی، کښته والی، کته والی؛ ۲) پستوالی، رذالت، پستي.

**ټيټ سترګی** (ṭiṭstárgay) ص. نر.م. شرمنده، شرمېدلی، کوز سترګی، ملامت.

**ټېټسه** (ṭeṭasá) ښځ.م. د جوارو توکه، د جوارو توقه، د جوارو غوټی، د جوارو سوټکه.

**ټيټک** (ṭiṭák) نر.م. د کدو په څېر او د توري په اندازه یو ډول سابه دي.

**ټيټکه** (ṭiṭká) نر.م. تمبکې، لړمې، لړمکې، یو ډول ناروغي ده.

**ټيټکی** (ṭiṭakáy) ص. نر.م. غونډکی، ټيټ قدی.

**ټيټکۍ** (ṭiṭakə́y) ښځ.م. ۱) سترګۍ، د زنګانه سترګه، ګونډه؛ ۲) د ټيټکي مؤنث شکل.

**ټيټکې** (ṭiṭáke) ښځ.م. ۱) ټوپکې، ترپکې؛ ۲) هلې ځلې، کوښښ، زیار، زحمت.

**ټيټول** (ṭiṭawə́l) مص. مت. ۱) کښته کول، کوزول ۲) رانښېږدې کول؛ ۳) سپکول ٤) کمزوري کول.

**ټيټه** (ṭī́ṭa) ښځ.م. ۱) خواره خبره، کمزورې خبره، سپکه خبره؛ ۲) د ټيټ مؤنث شکل.

**ټيټی** (ṭiṭáy) ص. نر.م. کوپی، شاکوپی، هغه سړی چې ملا یې بوټه وتلې وي.

**ټيټۍ** (ṭiṭə́y) ښځ.م. ۱) د توپۍ، د خاورو کاسه، د خاورو کندولی؛ ۲) د ټيټی مؤنث شکل.

**ټيټېدل** (ṭiṭedə́l) مص. ل ۱) کښته کېدل، کوزېدل؛ ۲) کږېدل، د تعظیم لپاره سر رانښکته کېدل؛ ۳) سپکېدل؛ ٤) لرېدل، پرېدل؛ ۵) شرمېدل

**ټېر** (ṭ(e,ay)r) نر.م. (ج. ټېرونه) وګ. ټایر.

**ټيز** (ṭiz) نر.م. (ج. ټيزونه) تیز، ټغ، تړ.

**ټيزن** (ṭizán) ص. نر.م. ۱) ټيزاوڼ؛ ۲) داړن.

**ټيس پيس** (ṭispís) ص. نر.م. ۱) لټ، تنبل؛ ۲) ګډوډ او له منځه تللی.

**ټېغ** (ṭeğ) نر.م. (ج. ټېغونه) غرچې، اردمې، اروی، دخولې له لارې په اواز سره د معدې د بادراوتل.

**ټيغ** (ṭiğ) نر.م (ج. ټيغونه) مردکه، مردکی، ټيک، ټیق، د کوچنیانو د لوبو مردکی.

**ټېغ ټمبه** (ṭeğṭambá) ص. ښځ.م. ۱) قبض، ټمبه؛ ۲) بدهضم؛ ۳) پریشان، خپه، زهیر.

**ټيغ سترګی** (ṭiğstargáy) ص. نر.م. زړ سترګی، زړی، برغاسترګی، ټاغ سترګی.

**ټيغکه** (ṭiğáka) ښځ.م. ټټغه، یو ډول خړ رنګه کوچنۍ مرغۍ.

**ټيغکی** (ṭiğakáy) نر.م. ټغکی، ټغی، ټيغی، د چرګانو یو ډول ناروغي ده.

**ټيک** (ṭik) نر.م. ۱) چارګل، د ښځو د پزې ګاڼې؛ ۲) ټيکه، د تندي یو زیور دی؛ ۳) ص. نر.م. ۱) سم، صحیح؛ ۲) سپینتی، ښېړی.

**ټېک** (ṭek) نر.م. ۱) ډډه، تکیه؛ ۲) ارام، دمه؛ ۳) ارام ځای، مسکن؛ ٤) تنکی، شقیقه.

**ټيکالخور** (ṭikālxór) ص. نر.م. ۱) مړی خور، ډوډۍ خور؛ ۲) خېټور، ګېډور، نسور.

**ټيکالمار** (ṭikālmā́r) ص. نر.م. ډوډیمار، ډوډۍ ...ونکی، سخي، لنګري.

**ټيکاله** (ṭikā́la) ښـځ.م. ۱) ډوډۍ، مړی؛ ټيکله نغن؛ ۲) ګوډۍ چرګ، کوکوړیښ، ببینکی.

**ټېکانه** (ṭekā́na) ښځ.م. د اوسېدو ځای، ټيکاونه، استوګنځی، مسکن، سرپناه.

**ټېکاو** (ṭekā́w) نر.م. ۱) دېره، استوګن؛ ۲) په دمه، په ارام، په استراحت.

**ټېکاوول** (ṭekāwawə́l) مص. مت. ۱) استوګن کول، اوسول، دېره کول، مېشتول، ټېکول؛ ۲) ارام کول، دمه کول.

**ټېکاوېدل** (tekawedə́l) مص. ل. ۱) استوګن کېدل، اوسېدل؛ ۲) آرامېدل، دمه کېدل.

**ټيکټاکه** (ṭikṭā́ka) ښـځ.م. پټ داره غـاليـچه، پشمداره قالينچه، خرسک.

**ټيک خولی** (ṭiyakxū́lay) نـر.م. جګ خولی توب، جهاز ويشتونکی توپ، دافع هوا.

**ټيکرۍ** (ṭikrǻy) ښځ.م. کوچنۍ غونډۍ.

**ټيکری** (ṭikráy) نر.م. (ج. ټيـکـري) ۱) پوړنی، زروکی، څادر؛ ۲) د جوارۍ پړ؛ ۳) کـودری، کودی، کودرکی.

**ټيکس** (ṭikás) نر.م. ټکس، ټکټ.

**ټېکس** (ṭeks) نر.م. و ګ. ټکس.

**ټېکسي** (ṭeksī́) نر.م ۱) و ګ. ټکسي؛ ۲) بدلمنه ښځه، بدفعله ښځه.

**ټېک شوی** (ṭekšawǻy) ص. نر. م۱) دېره شوی مېشت شوی؛ ۲) دمه شوی، آرام شوی.

**ټيکله** (ṭikā́la) ښځ.م. مړی، ډوډۍ، نغن.

**ټيکلی** (ṭikalǻy) نر.م. ۱) ککوړی، ټيکله، څکۍ، وړه ډوډۍ؛ ۲) خوږه کلچه.

**ټيکه** (ṭiká) ښځ.م. ۱) ککشه، قشقـه، هغه خـال چې هندوان په تندي باندي لګـوي ۲) څـېـره، د تندي يو ډول ګاڼه؛ ۳) ستن، پېچکاري.

**ټېکه** (ṭeká) ښځ.م. ۱) اجاره، ذمـه واري، په ذمه اخيستل، قرارداد؛ ۲) په پښتو کې يو ډول لوبه.

**ټېکه وال** (ṭekawā́l) ا. احصارګر، ټېکه دار.

**ټېکۍ** (ṭekǻy) ښځ.م. ۱) يو ډول مرغۍ ده چې په سر يې ښنبه وي؛ ۲) څېره، د تندي يو ډول ګاڼه؛ ۳) ټيکلی؛ ٤) غـونډاری؛ ٥) يو ډول خـواږه؛ ٦) د بدلې سروکی.

**ټېکېدل** (ṭekedə́l) مـص. ل. ۱) دېـره کـېدل، مېشت کېدل؛ ۲) دمه کېدل، آرامېدل.

**ټيګه** (ṭigá) ص. نب. ډنګرغوڅکی، خوار غوايی.

**ټېګی** (tegáy) نر.م. يو ډول ختکی.

**ټېل** (tel) نر.م. ۱) ګنه ګونه؛ ۲) ديکه، ټېله، ډغره، پوري وهنه.

**ټيل ټال** (ṭilṭā́l) نر.م. ۱) ټېل جد، ټال متـول، انې بانې؛ ۲) د کوچنيانو شور او ځوږ.

**ټېل ټال** (ṭelṭā́l) نـر.م. ۱) سـاتېري، تفـريـح؛ ۲) بازي، لوبه؛ ۳) ټوکه، مسخره.

**ټېلفون** (ṭelefū́n) نر.م. ټېلې فون، فون، لرغږون.

**ټېلفون ګرام** (ṭelifūngrā́m) نـر.م. ټېلفـوني پيغـام او خبـر، هغه ټېلفـوني موضـوع چې پر کاغذ وليکل شي.

**ټېلماټېل** (ṭelmāṭél) نـر.م. ۱) ډېکې، ډکې، ټېلې، زورېنډې، غوېمنډ، ګنه ګونه.

**ټېلمار** (ṭelmā́r) نر.م. ټېله وهنه، ، ديکه ورکونه.

**ټېله** (ṭelá) ښځ.م. ۱) ديکه، ډغره؛ ۲) د اوبو د مخ ګـرځولو لپاره کانيـز بند، د لرګيو او خسو هغه ګېډۍ چې د اوبو په مخ کې اچول کېږي.

**ټېله مار** (ṭelamā́r) نر.م. ۱) طفيلي، بېکـاره؛ ۲) هغه څوک چې غټې تجارتي معاملې کوي.

**ټېليا** (ṭelyā́) ښځ.م ۱) الويه چاړه؛ ۲) مهتر، سويس سائيس، د اسانو خدمتګار.

**ټيلي پاتي** (t̤elipā́ti) ص. نب. د فکرونو ارتباط يو له بله سره، د اندونو د اړيکې بحث.

**ټيليګراف** (t̤eligrā́f) نر. م. ټليګراف، تلګراف، د ټيليګراف دستګاه، د خبر رسولو آله.

**ټيليګرام** (t̤eligrā́m) نر. م. تلګرام، تلګراف کول ټيليګرام لېږل.

**ټيم** (t̤im) نر. م. ۱) پيپ، پيپه، اوسپنيز لوښي؛ ۲) سپينځى، قلعي، هغه فلز چې ويلې کېږي او مسي لوښي پرې سپينېږي.

**ټېم** (t̤em) نر. م. ۱) وخت، ساعت؛ ۲) حال، وضع.

**ټيمک** (t̤imák) نر. م. ۱) د کېږدۍ يا تنبو لويه ستنه؛ ۲) د اوښ لـه کتـي (ځـل) نه د باندې راوتى لرګى، دسه؛ ۳) وروکى ټيم، ټيمګى.

**ټيمګر** (t̤imgár) نـر. م. د ټيم کار کوونکى، ټيم جوړوونکى.

**ټيمګنى** (t̤imgaṇáy) نر. م. ټيمک، ټيمګى.

**ټينخى** (t̤inxáy) ص. نر. م. دولي، ځان ښوونکى.

**ټېنس** (t̤en(i,á)s) نر. م. يو ډول لوبه ده.

**ټينګ** (t̤ing) ص. نـر. م. ج. ۱) پـوخ، مضبـوط، کلک؛ ۲) د نرم او نرۍ ضد؛ ۳) کنجوس، بخيل

**ټينګار** (t̤ingā́r) نـر. م. ۱) اصـرار، تاکـيد؛ ۲) ټينګوالى، مضبوطي، ثبات، کلکوالى.

**ټينګارادب** (t̤ingāradáb) ا. مقاومتي ادب، مزاحمتي ادب.

**ټينګاري خج** (t̤ingārixáj) (ګر.) تاکيدي خج، تاکيدي فشار.

**ټينګاو** (t̤ingā́w) نر. م. ۱) ټړون، ضبط و ربط؛ ۲) استحکام، محکموالى، مضبوطوالى.

**ټينګتار** (t̤ingtā́r) نـر. م. ۱) تاکيد، ټينګښا، ټينګتوب؛ ۲) ټينګ ارتباط، محکم تار.

**ټينګرى** (t̤ingaráy) نـر. م. ټينګى، ټوسى، شاټينګه، چتى، د مرغانو معده، ټينګى.

**ټينګړ** (t̤ingáṛ) نر. م. و ګ. ترنګړ.

**ټينګړى** (t̤ingṛáy) ښـځ. م. کنـړيش، ترهـنګلى، کته پيش، کته بوز.

**ټينګل** (t̤ingál) نر. م. پلکه، کوکه، د پنې مېخ.

**ټينګول** (t̤ingawál) مص. مت. ۱) محکمول، کلکول؛ ۲) چاپې کـول، کېمنډل؛ ۳) کلک نيول؛ ٤) ګاټه کول، ختمه کول؛ ٥) مجبورول.

**ټينګونى** (t̤ingawū́nay) نـر. م. ۱) محکموونى کلکونى، مضبوطونى، هغه شى چې يو بل شى پرې ټينګېږي، ګيرا؛ ۲) ساتندوى.

**ټينګه** (t̤ingá) ښځ. م. ۱) ټينګون، سپار ښتنه؛ ۲) محکمي، پوخوالى؛ ۳) شاټينګه، د مرغانو معده؛ ٤) ناغه، ټړون؛ ٥) د ټينګ مؤنثه بڼه.

**ټيوب** (t̤yūb) نر. م. ۱) تهـوب، هغه نل چې د ربړ، ښيښې يا کـومې بلې مادې څخه جوړ شوى وي؛ ۲) د ملهم بوتل، د ملهم بوتلګى.

**ټيوبا** (t̤yubā́) نر. م. مو. لـوى ترم، لويه باجه، يو ډول پخوانى ترمپټ.

**ټيوټېرکه** (t̤ewt̤eráka) ښځ. م. ټيوټرکه، يو ډول چونغکه ده چې زياتره د اوبو پر غاړه ګرځي.

# ث

ث(se) ښځ.م. ثې،د پښتو په الفبې کې اووم توری چې ابجدي ارزښت يې ۵۰۰ دی.

ثابت (sābit́) ص. نـر.م. ۱) پوره، روغ، لـوار؛ ۲) ټينګ؛ ۳) رښتيانی، ثبوت شوی، پرځای.

ثابتول (sābitawə́l) مص. مت. ۱) ثبوتول، څرګندول؛ ۲) سرته رسول، مضبوطول، پوره کـول؛ ۳) رښتيا کـول، حقيقت ته رسول؛ ۴) ځای پر ځای کول، په ځای درول.

ثابتېدل (sābitedə́l) مص. ل. ۱) ثبوتېدل؛ ۲) محکمېدل؛ ۳) رښتيا کېدل؛ ۴) ځای پر ځای کېدل.

ثاد (sād) نر.م. زيم، لنده بل، نو. نم.

ثاقب (sāqíb) ص. نـر.م. روښانه، ځلېدونکی، رون، ځلاند، ځلند، برېښېدونکی.

ثانيه (sāniyá) ښځ.م. شېبه، د يوې دقيقې شپېتمه برخه وخت.

ثبات (subā́t) نر.م. قرار، پوخوالی، پاېښت، ټينګوالی، متانت، کلکه دربدنه، استقرار.

ثبت (sabt) نر.م. ليکنه، داخلونه، درجونه، کښنه.

ثبتول (sabtawə́l) مص. مت. ۱) ليکل، داخلول، درجول، کښل؛ ۲) د اواز ټېپ کول (ټېپول).

ثبتېدل (sabtedə́l) مص.ل. ۱) ليکل کېدل، راجسترې کېدل؛ ۲) بندېدل، په فيته باندې ټېپېدل.

ثبوت (subū́t) نر.م. ۱) سپيناوی، سپينونه، رښتيا کونه؛ ۲) دليل، د خبرې تصديق.

ثرا (sarā́) ښځ.م. ۱) ثری، ځمکه، خاوره؛ ۲) تاترين، د ځمکې د بره لاندې برخه.

ثروت (sərwát) نر.م. شتمني، شته، بډايتوب، اصط. دولت، مال، غنا.

ثريا (surayā́) ښځ.م. اووه ستوري، پېروني، پروين، اووه خويندې، پرې وونې.

**ثقافت** (saqātát) نر.م. ۱) دود، دستور، رسم او رواج؛ ۲) کلچر، کولتور، فرهنگ؛ ۳) اخلاق د یوې تولنې تهذیب.

**ثقالت** (saqālát) نر.م. ۱) درونـدوالی، د وزن زیاتوالی؛ ۲) د یوې کلیمې درونـدوالی.

**ثقل** (síqal) نر.م. درونـدوالی، بوج، بار، وزن.

**ثقلین** (saqaláyn) نر.ج. ۱) دواړه جهانه، دنیا او آخرت، دنیا او عقبی؛ ۲) انسان او پېری.

**ثقه** (siqá) ص. مب. کره، معتبر، معتمد، د اعتبار وړ، بې غشه، آزمایل شوی.

**ثقیل** (saqíl) ص. نر.م ۱) درونـد؛ ۲) سخت، گران ۳) په سختۍ سره هضمېدونکی خواړه؛ ٤) هغه کلیمه چې ادا کول یې گران وي.

**ثلاثي** (salāsí) ص. نب. ۱) درې توریزه کلیمه، درې حرفیزه کلیمه؛ ۲) درباعـي په ډول د دریو شعرونو کلام.

**ثلث** (sols) ص. نر.م.ج. ۱) دریمه، برخه؛ ۲) خ. یو ډول ښکلی عربي لیک دی.

**ثمر** (samár) نر.م. ۱) ببره، مېوه، ثمره؛ ۲) فایده، گټه؛ ۳) بدله؛ ٤) نتیجه، محصول.

**ثمن** (samán) نر.م. ۲) قیمت، اجرت؛ ۲) پیسې؛ ۳) تمه، اتمه برخه.

**ثنا** (saná) ښځ.م. ستاینه، تعریف، حمد، صفت.

**ثناخوان** (sanāxwān) ص. نر.م. ستایونکی، ثناویونکی، تعریف کوونکی.

**ثواب** (sawáb) نر.م. ۱) اجر، بدله، عوض، مزد؛ ۲) نېکي، ښېگنه، ښېگړه.

**ثوابت** (sawābít) نر.م. ۱) د ثابت جمع؛ ۲) ولاړ ستوري، هغه ستوري چې نه گرځي.

**ثوابي** (sawābí) ص. نب. اجر لرونکی کار، د فایدې کار، د نېکۍ کار، د ښېگڼې کار، د خیر کار.

**ثوب** (sawb) نر.م. ۱) جامه، کالي؛ ۲) د جامو په شمارلو کې پخوانیو میرزایانو «ثوب» کلیمه د تمیز د کلیمې په توگه کاروله.

**ثور** (sáw(a)r) نر.م. ۱) غویی، غوڅکی، غوسکی؛ ۲) د لمریز هجري کال دویمه میاشت.

# ج

ج(jim) نــر.م. د پښتـو الفبې اتم توری چې ابجـدي ارزښت يې (۳) دی.

جابر (jābír) ص. نــر.م. (ج. جــابران) ۱)زورور، تکړه؛ ۲)ظالم،جبرکوونکی، تاوان رسوونکی ۳)هډ بند.

جابه (jābá) ښځ.م. کوپی،کوبی، ډبه، هغه ځرمني کوپی چې تېل يا غوړي په کې اچول کېږي.

جابې (jābáy) ښـځ.م. ۱)خلـکې، د نخښـه دونکو کميس، جامن؛ ۲)د ښښې زنگونه.

جاپري (jāparí) ښځ.م. د پسونو د آش ورکړه شوو څو پوستکو لويه تخته چې د سندلۍ د بـرستن په ځای استعمالېږي.

جاټکی (jātkáy) نر.م.(ج. جاټکي) هلک، زنکی، ژنی، ژنکی.

جاټ (jāṭ)ص. نر.م. ۱) هغه وګړي چې د ځمکو په کاروبار اخته وي؛ ۲)تور رنگی؛ ۳)جټ، ناپوه.

جاج (jāj) نر.م. ۱)اندازه، قياس، جايزه؛ ۲)اند، فکر، اندېښنه، پام، سوچ.

جاجل (jājә́l)م. فکر کول، اندل.

جاجونکی (jājū́nkay) فا.نر.م. غمجن، فکرمن، اندېښمن، فکرکوونکی، په چورتوکې ډوب.

جاخه (jāxá) ښځ.م. د ونو او بوټو ځانګې چې يو په بل کې ننوتې او تاو راتاو وي.

جادو (jādū́) نر.م. کوډې، منتر، تونه، سحر.

جادوبيان (jādūbayā́n) ص. نـر.م. هغه څوک چې وينا او خبرې يې پر زړونو اغېز کوي.

جادوګر (jādūgár) ص. نر.م. (ج. جـادوګران) ۱)کـوډګر، جادو کـوونکی؛ ۲)ټګ، چل‌باز، غولوونکی، تېرايستونکی.

جاده (jādá) ښـځ.م. (ج. جـادې) لاره، لـيار، په ښار کې يا له ښار نه د باندې لوی، پراخ واټ.

جاډنګ (jādә́ng) ص. نر.م. ډنګر، کمزوری

**جاډی** (jāḍəy) ښځ.م. ۱) کمزورې او بېکاره او ښه ۲) بوډۍ، زړه ښځه.

**جاذب** (jāzíb) فا.نر.م. ۱) جذب کوونکی، راکښونکی؛ ۲) هغه کاغذ چې رنګ کښوي

**جاذبوالی** (jāzibwā́lay) نر.م. ښکلا، ښايست، راکښون، پېمختوب، ډوليتوب، جاذبيت.

**جاذبه** (jāzibá) ښځ.م. راښکنه، جذبونه، هغه قوه چې اجسام ځان ته راکښوي.

**جار** (jār) نر.م. ۱) ځار، قربان؛ ۲) ډنډوره؛ ۳) دشپېلۍ پرده؛ ٤) د مرزانو د نيولو لپاره مصنوعي ځنګل؛ ٥) دوچو خوشايو دراغونډولو ځای؛ ٦) درمند بادولو په وخت کې جال درول؛ ۷) ډېوال؛ ۸) د سېلاب لپاره له تيږو پخه پوله ۹) ډنډوره، نغاره.

**جارايستل** (jāriistə́l) مص.مت. ۱) بېرته ګرځول، قی کول؛ ۲) دلارې نه بېرته راګرځول؛ ۳) بندول، جارباسل؛ ٤) اوېدل، تاوول.

**جارباسل** (jārbāsə́l) مص.مت. ۱) وګ. جار ايستل؛ ۲) تېرل، په سر کول، راخرخول؛ ۳) پښېمانه کول.

**جارچي** (jārčī́) ص.نر.م. ۱) ډنډورچي، نغاره چي، نغاره کوونکی؛ ۲) مجازاً هغه څوک چې راز نه شي ساتلای او افشاء کوي.

**جارغالی** (jārğālā́y) نر.م. ۱) نغری، جارغلی، هغه نغری چې په کوټې کې جوړ شوی وي؛ ۲) کوراړی، ورکوټی پټی، کوره کی.

**جارغلی** (jārğalā́y) نر.م. نغری.

**جارکړونی** (jārkṛū́nay) نر.م. ۱) جارکوونکی، اوېډونکی؛ ۲) هغه څوک چې چرګه په هګيو کښېنوي او ددې کار په بدل کې د يوې نښانې شوې هګۍ بچی اخلي.

**جارکېده** (jārkedə́) نر.ج. ځارېده، قربانېده، صدقه کېده، جارېده.

**جارګنی** (jārganáy) ښځ.م. کوڅه، د خوشايو لرګيو او څپياکو د اېښودلو ځای.

**جارګنی** (jārganáy) نر.م. هغه ځای چې په لرګيو راايسار شوي وي، شپول، دشپې له خوا د ځاروي پنډغالی.

**جارو** (jārū́) نر.م. (ج.جاروګان) جاروب، ربېځ، رېبز، بوهارۍ، کانته.

**جارواته** (jārwātá) نر.ج. ۱) پښېمانه کېده؛ ۲) بېرته ګرځېده.

**جاروتل** (jārwatə́l) مص.ل. ۱) پښېمانه کېدل، بېرته ګرځېدل، وعده خلافه کېدل؛ ۲) تلل، راګرځېدل، راستنېدل.

**جاروکښ** (jārūkáṣ) ص.نر.م. جارو کوونکی، جارو وهونکی، جارو سره ځای پاکوونکی.

**جاروکول** (jārūkawə́l) مص.مت. ۱) کانته کول، جارو سره د ځای پاکول، ربېز کول، ربېځ کول؛ ۲) له منځه وړل، پوپنا کول.

**جاروګی** (jārūgáy) ښځ.م. (ج. جاروګيانې) وړه جارو، وړوکې جارو، ربېزګی، ربېځه.

**جارول** (jārawə́l) مص.مت. ۱) ځارول، قربانول؛ ۲) تنسته غورول؛ ۳) جاروکول، پاکول، صفا کول، پېجوول، پوکول.

**جارونه** (jārawə́na) ښځ.م. ۱) تنسته غورونه؛ ۲) ځارونه، قربانونه، صدقه کونه.

**جاري** (jārí) ص.نب. ۱) روان، بهاند، بهېدونکی؛ ۲) همېشه، تل؛ ۳) قرباني، د ځارېدو؛ ۴) يو ډول ترکي خط دی.

**جارېدل** (jāredə́l) مص.مت ۱) ځارېدل، قربانېدل ۲) تنسته غوړول کېدل.

**جاري کول** (jārikawә́l) مص. مت. ۱) روانول، بهول؛ ۲) نافذول؛ ۳) پيل کول.

**جاړ** (jāṛ) نر.م. ۱) جلاب؛ ۲) دازغنو ونو او بوټو ځنګل ته ويل کېږي نه د غټو ونو ځنګل ته.

**جاړبوټی** (jāṛbū́ṭay) نر.م. د جلابو بوټی، هغه بوټی چې په جلابو کې استعمالېږي.

**جاړجاخی** (jāṛjā̂xay) ص. نر.م. جاخه، يو په بل کې نښتي، سره ښخ.

**جاړوله** (jāṛwә́la) ښځ.م. په جلابو کې پکارېدونکی بوټی.

**جاړه** (jāṛә́) ښځ.م. (ج. جاړې) يو اغزن بوټی دی.

**جاز** (jāz) نر.م. مو. د جاز موسيقي، د جاز ګډا، د نڅا داسې موسيقي چې له ښوره سره مله وي.

**جاسوس** (jāsū́s) ص. نر.م. مخبر، خبر رسوونکی، خبر وړونکی، پټ حال لټوونکی، ربوټچي

**جاغه** (jāğә́) ښځ.م. د کميس غاړه، ګرېوان.

**جاکټ** (jākә́ṭ) نر.م. (ج. جاکټونه) ۱) نيم تنه يي جمپر؛ ۲) بنيان.

**جاکړ** (jākә́ṛ) نر.م. جکړ، بادوباران، ځول، هغه باران چې سخت باد او سېلۍ ورسره وي.

**جاکی** (jākә́y) نر.م. (ج. جاکي) يخ شوی، موره شوی، تومنه شوی، مايه شوی، پرن شوی.

**جاګنی** (jāganә́y) نر.م. نوی، هغه غوايي چې په غوبله کې ځای په ځای موړي ته جوخت ولاړ وي او نور غوايان ورباندې راتاوېږي.

**جاګير** (jāgī́r) نر.م. هغه سيمه يا ځمکه چې د يوې سيمې د واکمن له خوا چا ته د هغه د خدمت يا معاش په مقابل کې ورکول کېږي.

**جاګيردار** (jāgīrdā́r) نر.م. (ج. جاګيرداران) د جاګير خاوند، د ځمکو خاوند، هغه چا ته چې جاګير ورکړی شوی وي.

**جال** (jāl) نر.م. ۱) تور؛ ۲) دود، دستور؛ ۳) مکر و فريب، ټګي؛ ٤) دام، لومه.

**جالګی** (jālgә́y) نر.م. (ج. جالګي) ۱) ووړکی جال، جالګوټی؛ ۲) د غنې ځاله؛ ۳) د نغرې په څنګ کې د خوشيو ايښودلو ځای.

**جالګی** (jālgә́y) ښځ.م. ۱) هغه جالۍ چې کړکۍ ته د ماشو د مخنيوي لپاره لګول کېږي؛ ۲) د ښځو په بوقره کې جالۍ.

**جالوغ** (jālū́ğ) نر.م. جابغ، د آس د زين لاندې هغه لمڅی چې د خولو لپاره وي.

**جالول** (jālawә́l) مص. مت. رواجول، دودول.

**جاله** (jālә́) ښځ.م. (ج. جالې) ۱) ځاله، بنځولی؛ ۲) د جولاګي ځاله؛ ۳) له سيند څخه د پورې وتو يوه وسيله چې له څو[illegible]ګانو څخه جوړه شوې وي؛ ٤) سپينه پرده چې په سترګه کې پيدا کېږي ۵) پوله؛ ٦) نېستي، غريبي، خواري.

**جالوان** (jālawā́n) نر.م. ۱) د جالې چلوونکی؛ ۲) د جالې خاوند، د کښتۍ خاوند.

**جالی** (jālә́y) ښځ.م. ۱) جوړې، شرومبې، شنه اوبړې چې په ډنډ او ولاړو اوبو کې پيدا کېږي؛ ۲) د اوسپنې، پلاستيک او... څخه جوړه شوې سوری سوری پرده.

**جالېدل** (jāledә́l) مص. ل. مشهورېدل، رواجېدل، دود کېدل.

**جام** (jām) نر.م. (ج. جامونه) ۱) کټوری، پياله، کاسې ته ورته لوښی؛ ۲) د غور په ولايت کې د يوه تاريخي ځای نوم دی.

**جامباز** (jāmbā́z) نر.م. ۱) مست اوښ، ناباري اوښ، سرکښ اوښ؛ ۲) د خپلې خوښې خاوند، ناړامه، سرتنبه، سرتمبه.

**جامبره** (jāmbә́ra) ښځ.م. ښېره، د ښېرې ونه.

**جامبړه** (jāmbṛá) ښـځ.م. (ج. جامبړې) جـاړه، جاخه، هغه ونې او بوټې چې څانګې یې یو په بل کې سره ننوتې وي.

**جامد** (jāmíd) ص. نـر.م. ۱) ټینګ، کلک شی؛ ۲) هغه کلیمه چې بله کلیمه ترې اشتقاق نه شي موندلای.

**جام جم** (jāmijám) نـر.م. د داستانو لـه مخې د جمشید پاچا هغه پیاله چې دنړۍ نقشه په کې ایستل شوې وه.

**جامع** (jāmiع) ص. نب. ۱) یو ځـای کـوونکـی؛ ۲) مکمل، پوره، رانغاړونکی؛ ۳) لوی جومات چې دجمعې او اختر لمونځونه پکې کېږي؛ ۴) مجمـوعـه، هغه جونګ چې قانوني مقررات په کې راغونډ شوي وي؛ ۵) دحضرت محمد (ص) د احادیثو مجموعه؛ ۶) د الله(ج) یو نوم.

**جامع الحروف** (jāmiعulhurúf) نر.م. ج. بد. هغه صنعت ته وایي چې په یوه شعر کې د هجا ټول حروف راوړل شي.

**جامع اللغات** (jāmiعulluǧát) نـر.م. د ژبې هغه قاموس چې د هر لغت مـانا په ډېر تفصیل سره په کې څېړل شوې وي.

**جامعه** (jāmiعá) ښـځ.م. ۱) ټولنه، سوسـایټي؛ ۲) پوهنتون، یونیورسټي، دارالعلوم.

**جامکی** (jāmakáy) نر.م. لنډ پتلون.

**جامګی** (jāmgáy) نر.م. ورکوټی جام، کوچنی جام، جام ګسکی، جام ګنکی، جاموکی.

**جامن** (jāmán) نـر.م. ۱) د یوې ونې نوم دی چې د میوې رنګ یې د عـوډ رنـګ غـونـدې دی؛ ۲) جابې، کبو، جامنو، هغه کمیس چې نڅاګر یې د نڅا په وخت کې اغوندي.

**جامه** (jāmá) ښځ.م ۱) زامه، ژامه؛ ۲) کالي، لباس.

**جان** (jān) نـر.م. ۱) ځـان؛ ۲) ډېر خوږ، ګـران؛ ۲) دمینې کلیمه.

**جانان** (jānā́n) نر.م. ۱) جان، محبوب، معشوق؛ ۲) معشوقه؛ ۳) عجیب، حیرانوونکی.

**جانب** (jāníb) نر.م. (ج. جانبونه) څنګ، طـرف، لوری، اړخ، خوا، ډډه، پلو.

**جانباز** (jānbā́z) ص. نر.م (ج. جانبازان) میړنی، زړور، بهادر، سرتېری.

**جانبدار** (jānibdā́r) ص. نر.م. ملګری، پلوي، په ننګه، پرخوا، مددګار، په پلو، په خوا.

**جانبین** (jānibáyn) نر.ج. دواړه خواوې، دوه جانبه، دوه اړخه، دواړه پلوه، دوه طرفه.

**جان جان** (jānjā́n) نـر.م. ۱) زارۍ، چاته عذر او زارۍ کـونه، جـګې جـګې؛ ۲) ص. د زیـاتې مینې لـه امله چاته ویل کېږي.

**جانجو** (jānjó) ص. نر.م. سست، ناړامه، ناراسته، جانجی؛ ۲) مجذوب، لېونی.

**جانجو پانجو** (jānjo pānjó) ص. نر.م. سست پست، بېکاره، بې ښې، بې ښمرې.

**جانجي** (jānjí) ص. نر.م. ۱) ورابانی، دروغی، په وراتللی، واده ته بلل شوی؛ ۲) چغجي، چغزي مغز لرونکی؛ ۳) نرم، کاغذي، ژر ماتېدونکی.

**جانجیتوب** (jānjitób) نـر.م. ۱) سـستي، ناراستي؛ ۲) په وراکې شـاملېدنه، ورابانې کېدنه، وروڅي کېدنه.

**جانجېدل** (jānjedə́l) مص. ل. سستېدل، لټ کېدل، ناراسته کېدل.

**جانخاني** (jānxāní) نر.م. کمبو، ترنګړ، سوده، کوری، د بوسو د وړلو هغه وسیله.

**جاندار** (jāndā́r) ص. نـر.م. ۱) ذیروح، سـاکښ؛ ۲) قوي، تندرست، تکړه، صحتمند.

**جاندم** (jāndә́m) نر.م. دوزخ، جهنم.

**جانشین** (jānәšín) نر.م. عوضي، قايم مقام، ځای ناستی، د بل چا په ځای ناست.

**جانکټی** (jānkaṭáy) نر.م. (ج. جانکټیان) ۱) جان نثار؛ ۲) د بندیخانې ملازم؛ ۳) د غرغرې د تختې کېښوونکی.

**جان نثاري** (jānnisārí) ښځ.م. قرباني، له ځانه تېرېدنه، مېړانه، زړورتوب.

**جان گداز** (jāngodā́z) ص. نر.م. ځان خوړونکی، ځان ويلې کوونکی.

**جاوجې** (jāwjә́y) ښځ.م. د کمیس لمن، د ټادر (لوپټې) یا بل کالي غاړه یا څنډې.

**جاور** (jāwár) نر.م. یو ډول بوټی دی.

**جاوسا** (jāwsā́) ښځ.م. بېخبل، ګرونج، د منګي اېښودلو لرګین یا اوسپنیز ځای.

**جاوو** (jāwū́) نر.م. یو ډول تریو خوندی بوټی.

**جاه طلبي** (jāhtalabí) ښځ.م. عزت غوښتنه، ځان ته د غټوالي او لويي غوښتنه.

**جاهل** (jāhíl) ص. نر.م. ناپوه، بې عقل، بې علمه.

**جاهليت** (jāhilyát) نر.م. ۱) ناپوهي، ناداني، بې علمي؛ ۲) د مسیح علیه السلام له رحلت نه د محمد(ص) تر ظهور پورې د جزیرة العرب د تاریخ یوه دوره؛ ۳) سرتمبګي، ناړامي.

**جاه و جلال** (jāhujalā́l) نر.م. شان او شوکت، دبدبه، رعب.

**جای بند** (jāybánd) ص. نر.م. ځای پر ځای ولاړ، - جای بند آس.

**جایداد** (jāydā́d) نر.م. ۱) ملکیت، مال، ځمکه؛ ۲) ګنجایش، ځایېدنه.

**جایز** (jāyíz) نر.م. ۱) مناسب، صحیح؛ ۲) روا، د شرعي او قانون مطابق؛ ۳) اصلي، ثقه؛ ۴) مستند؛ ۵) د منلو او منظورېدو وړ.

**جایزه** (jāyzá) ښځ.م. ۱) انعام، ګټنه؛ ۲) لټون، پړتال، جاج؛ ۳) حاضري، شمار؛ ۴) اندازه او معلومات کونه.

**جایفل** (jāyfál) نر.م. د یوې ونې مېوه ده

**جباټی** (jubāṭáy) نر.م. ټادر، جبته، جیبته.

**جبار** (jabā́r) ص. نر.م. ۱) زورور، غښتلی، جبر کوونکی؛ ۲) د خدای(ج) یو صفت دی.

**جبازه** (jabāzá) ښځ.م. جړباجړ، له واورې او باران سره یو ځای ورېدل.

**جبجبو** (jabjabú) نر.م. یو ډول بوټی دی چې په جبو او جبه زارو کې شین کېږي.

**جبر** (jábәr) نر.م. ۱) زور، ظلم، زیاتي؛ ۲) ري. الجبر، جبر و مقابله؛ ۳) فل. برخلیک، تقدیر.

**جبراً** (jabrán) ص. نر.م. په زور، په ظلم، په زیاتي.

**جبران** (jәbrā́n) نر.م. تلافي کونه، د تاوان تلافي.

**جبرانول** (jibrānawә́l) مص. مت. ۱) تاوان ورکول؛ ۲) مرسته کول؛ ۳) تلافي کول.

**جبرلوټ** (jabrlóṭ) نر.م. کونځی ټوپک، ماتووني ټوپک، ماتېدونکي ټوپک، سرپې ټوپک.

**جبروت** (jabarū́t) نر.م. لويوالی، لويي، سترتوب، د خدای کبریایي صفت.

**جبری** (jabráy) نر.م. ګالس، کشک، ګېټس، هغه تسمې چې پتلون ورباندې ټینګېږي.

**جبري** (jabrí) ص. نب. په جبر، په زور، په ظلم.

**جبرۍ** (jabrә́y) ښځ.م. لويې جرابې، هغه جرابې چې تر زنګنو پورې وي.

**جبړک** (jabaṛák) نر.م. ۱) وړه ژبه؛ ۲) د کوچنیانو د لوبو شی.

**جبل** (jabál) نر.م. د اوسپنې اوږدې میلې چې د تیږو اړولو او راویستلو لپاره کارېږي.

**جبړی** (jabúṛay) ص.نر.م. ۱) نا راسته، تمبل؛ ۲) بې شرمه، تېټ سترگی، بې غیرته.

**جبون** (۱) (jubún) نر.م. ۱) ژبه؛ ۲) وېرنـدوکی؛ ۳) د وهل له کلیمې سره د سخت دار مفهوم ورکوي.

**جبون** (۲) (jabún) نر.م. ۱) تربوزک، مول، اوربوزی تیتبوزکه؛ ۲) ص. نر.م. ژبه ور.

**جبه** (۱) (jabá) ښځ.م. ۱) وگ. ژبه؛ ۲) جبه زار؛ ۳) هغه لوبښی چې د گانی، تېل په کې تولېږي.

**جبه** (۲) (jubá) ښځ.م. (ج. جبې) شوقه، شقه، یو ډول چپنه ده چې اوږده لستوڼي لري.

**جبه جبان** (jabajabā́n) نر.م. ۱) خبرې اترې؛ ۲) لوز، قول، عهد، ژبه.

**جبه خور** (jabaxwár) نر.م. تاندوبه، جبجوب ځمکه، لنده خیشته ځمکه.

**جبه زار** (jabazā́r) نر.م. جبه، هغه ځمکه چې له ځانه اوبه په کې پیدا کېږي.

**جبهه** (jabhá) ښځ.م. (ج. جبهې) ۱) ډله، دسته، جماعت؛ ۲) د جگړې د میدان مخنۍ برخه؛ ۳) تندی؛ ٤) د سپوږمۍ د یوه منزل نوم.

**جبۍ** (jabə́y) ښځ.م. ۱) ژبۍ، زبس، د کوچنیانو د تالو پرېـوتلو ناروغي؛ ۲) یو اغزن سور گلی بوټی دی.

**جبین** (jabín) نر.م. تنده، وچولی، تندی.

**جپ** (jap) نر.م. وظیفه، ذکر، عبادت.

**جپالی** (japā́lay) نر.م. وبا، کوالرا، مرگو.

**جپامرگو** (japāmargó) ښځ.م. دوبا ناروغي.

**جپتال** (japtā́l) نر.م. مو. له لسو ماترو څخه جوړ د یوه تال نوم دی چې یو خالي او درې ضربه لري.

**جپړ** (japáṛ) نر.م. بېکاره اسباب، عبث او بېکاره څیزونه، له کاره وتلي اسباب او سامان.

**جت** (jat) نر.م. ۱) ډول، قیافه، بڼه؛ ۲) جوړه، جفت؛ ۳) ناپوه؛ ٤) ساروان، اوښپون، اوښبه.

**جت بولي** (jatbolí) ښځ.م. جټ بولي، بې شرمي، بې حیایي، سپکه وضعه او سپکه خوله.

**جتیي** (jatayí) ص. نر.م. خسک چرگ.

**جته** (jatá) ښځ.م. جتی، ډله، توله، غونډه.

**جتي ستي** (jatisatí) ص. نب. ۱) لونډ، مجرد؛ ۲) بې پروا؛ ۳) بد خرڅه، خرڅو، مُسرف.

**جټ** (۱) (jaṭ) نر.م. (ج. جټان) ۱) جټ، جاټ، جېپسي، رومانیز، د یو ټبر نوم، د راجپوتانو یوه څانگه؛ ۲) ص. ناپوه، جاهل؛ ۳) کم ذاته، کم اصله.

**جټ** (۲) (jiṭ) نر.م. ۱) فواره، داره؛ ۲) نوزل، هغه سوری چې غاز یا مایع په فشار سره د باندې ځني راوځي.

**جټ پول** (jaṭpól) نر.م. د ښځو مکر و فریب.

**جټټوب** (jaṭṭób) نر.م. ۱) جټوالی؛ ۲) ناپوهي.

**جټ ستریم** (jaṭstrím) نر.م. هو. تند باد.

**جټ کانه** (jaṭkā́na) ص.ښځ.م. ۱) معمولي، اسان؛ ۲) بې قاعدې.

**جټکه** (jəṭká) ښځ.م. وگ. جیټکه.

**جثه** (jusá) ښځ.م. (ج. جثې) ځېره، قواره، مخ، شکل، تن، بدن، صورت.

**جج** (jaj) نر.م. ۱) دزنې کوغالی، دزنې کوټی، د زنې ننوتې برخه؛ ۲) دزنې لاندې غوښه.

**ججکی** (jajkáy) نر.م. وگ. چچه.

**ججلداغ** (jijaldā́ğ) نر.م. چرچرانکی، دم، توز، یو ملغ ډوله ساکښ دی..

**ججوره** (jajū́ra) ښځ.م. ۱) جوجوره، جاغور؛ ۲) حوصله؛ ۳) پرسېدلی اورمېږ؛ ٤) د توپک جاغور یا ججوره.

ججوی (jajóy) نـر.م. د لاله گل، د خـا تـول گل، شنډي گل، يو ډول سارانی گل دی.

ججه (jajá) ښځ.م. (ج.ججې) ۱) قلنگ؛ ۲) باج؛ ۳) جزيه.

ججی (jijáy) نر.م. يو ډول حلال مارغه دی، نر يې اوږده لکۍ او ښايسته بڼکې لري.

جحيم (jahím) نر.م. دوزخ، جهنم.

جخ (j(u,o)x) نـر.م. ۱) د اوبـو مـچ؛ ۲) څـگ؛ ۳) بړبوکی، پوکنۍ حباب.

جخت (joxt) ق. ۱) پيوست، جوړه، څنگ په څنگ ۲) تيک، صحيح.

جختوالی (joxtwāláy) نر.م ۱) پيوستوالی، جوړه توب؛ ۲) تيکوالی، سموالی.

جختول (joxtawə́l) مص.مت.جوړه کول، برابرول سره څنگ په څنگ کول.

جخته (joxtá) ښځ.م. څخته، څښته، يو ډول غرنۍ بوټی دی.

جختېدل (joxtedə́l) مـص. ل. پيـوست کـېدل، جوختېدل، يو ځای کېدل، پيوستېدل.

جد (jad) نر.م. (ج. اجداد) نيکه، د پلار پلار، د مور پلار، لوی نيکه.

جدا (jodā́) ق. گوښي، جلا، بېل، يوازې، ځانله.

جداً (jiddán) ق. په جديت سره، په کلکه سره.

جدار (jidā́r) نر.م. دېوال،.

جدال (jidā́l) نر.م. جگړه، دښمني، لانجه.

جدايي (jodāyí) ښځ.م. ۱) بېلتون، فراق، هجران ۲) لرېوالی، بېلوالی، گوښېتوب

جدر (jadár) نر.م. بنسټ، تسته، اساس، آر، جرړه.

جدل (jadál) نـر.م. ۱) نزاع، مخالفت، دښمني، لج؛ ۲) شور، کړس، بحث، جنگ، جگړه.

جدوار (jadwā́r) نر.م. د يوه بوټي ريښه ده.

جد و جهد (jidujáhd) نر.م. هڅه، هلې ځلې، هاند.

جدور (jadū́r) نر.م. د کـوچنيانو د ژبـې (کنکې ژبې) د پورته کولو درمل يا دوا.

جدول (jadwál) نر.م. لسټ، لېست، فهرست.

جدي (jedí) ص. نب. ۱) فعال، تکړه؛ ۲) د حقيقت له مخې؛ ۳) په جديت؛ ٤) ښځ.م. مـرغـومی؛ ٥) د مـرغـومي مياشـت؛ ٦) قطبي ستوری؛ ۷) جغ. د ځمکې د يوې فـرضي کرښه ده.

جديت (jidiyát) نر.م. ۱) فعاليت، کوښښ، تکړه والی، تکړه توب؛ ۲) تېزوالی، تېزي.

جديد (jadíd) ص.نر.م. ۱) نوی، تازه؛ ۲) اوسنی؛ ۳) ددې وخت، عصري.

جذاب (jazā́b) ص. نـر. م.ج. ۱) راښکـونکی، جذبوونکی؛ ۲) په زړه پورې، زړه راښکونکی.

جذام (jazā́m) نر.م. و گ. پړنگ [۲].

جذب (jazb) نر.م ۱) اثر، کشش، کښونه، راکښنه؛ ۲) جوش، د بېخودۍ هغه ډول کيفيت چې اهل الله ته ورپېښېږي.

جذبات (jazabā́t) نر.م. (دجذبې جمع) احساسات د زړه او ذهن د جوش کيفيت.

جذبول (jazbawə́l) مـص. مـت. ۱) راکښـول، راجلبول، راکښل؛ ۲) ځان ته راښکل.

جذبه (jazbá) ښځ.م. احساس، داحساساتو پاړېدنه جوش.

جذر (jázar) نـر.م. ۱) اصل، ريښه، جـرړه، ولې؛ ۲) (ري.) هغه عدد چې په خپل ځان کې ضرب کړی شي؛ ۳) طب. هغه برخه چې له جـذع څخه جلا کېږي.

جر (jar) نر.م. ۱) وياله، لښتی، زاکښ؛ ۲) ص. نر. م. پاتې، پر، مغلوب؛ ۳) گډوډ؛ ٥) په گـرامر کې د يوې کليمې غير اصلي حالت.

**جرابه** (j(a,u)rāba) ښځ.م. (ج. جرابې) جراپه، جوراپه؛ د پښو اغوستلو کالي.

**جرأت** (jurát) نر.م. ۱) زړورتيا؛ ۲) بې پروايي.

**جراثيم** (jarāsím) نر.ج. ۱) اصل، ريښه؛ ۲) د ريښې چاپېره خاوره؛ ۳) د مېږي کور؛ ٤) وګ. مکروب.

**جراح** (jarāh) فا. نر.م. سرجن، څيرونکی، هغه ډاکتر چې عمليات کوي.

**جراحت** (jarāhát) نر.م. ټپ، زخم، پرهر، پرهار.

**جراحي** (jarāhí) ښځ.م. جر. عمليات، اپريشن، طبي عمليات، سرجري.

**جرار** (jarār) ص. نر.م. ۱) ژبغراند، ژبور، چالاکه؛ ۲) زړور، تکړه؛ ۳) په جنګ کې ماهر.

**جراسک** (jarāsək) نر.م. چرچرک، کيرړۍ، يو ډول حشره ده.

**جرايل** (jarāyəl) نر.م. ارت خولی غربين، يو ډول پخوانی ټوپک دی چې ارته خوله لري.

**جرب** (jarb) نر.م. پم، درب، خارښت، د ځان ګرولو يو ډول جلدي ناروغي ده.

**جرپى** (jarpáy) ص. نر.م. ګړتن، باتو.

**جرثقيل** (jarsaqíl) نر.م. پالوان، کرين.

**جرجر** (jarjár) نر.م. هر هر، خره ته د جنسي تحريک اواز.

**جرجوړ** (jarjúr) نر.م. ځروبی، جوړ جوړ، جوړ جوړي، شرشره، جرجوړی.

**جرجير** (jarjír) نر.م. تراتيزک، يو ډول سابه دي.

**جرح** (jarh) ښځ.م. ۱) جرحه، پرهار، زخم، ټپ؛ ۲) د چا شهادت باطلول.

**جرړه** (járra) ښځ.م. ولې، ولى، بېخ، بنياد، ريښه، ستنه، رده، اساس، د يوه شي اصل.

**جرړى** (jarráy) ښځ.م. يو ډول خړرنګې چنچنه.

**جرس** (jarás) نر.م. ۱) ګونګرې، ګينګرې، غړاوه، زنګوله، غړه، جړنګانی؛ ۲) د مړوتو د کسرونو د جوړولو يو شاعر.

**جرعه** (jorsá) ښځ.م. غړپ، ګوټ، غوړپ.

**جرغاتکه** (jərğātəka) ښځ.م. يوه مرغۍ دی.

**جرقه** (jaraqá) ښځ.م. ۱) لمبه، سپرغۍ، بڅرى، د اور بڅرى، د برېښنا پړک؛ ۲) چړک.

**جرکانى** (jarkāṇay) نر.م. چونګی، ګټه، په سود کې له اصلي ګټې زيات څه اخيستنه.

**جرکېدل** (jarkedə́l) مص. ل. ۱) ګډوډېدل، انجړېدل، جړېدل؛ ۲) مغلوبېدل، ماتېدل؛ ۳) نيول او لاس پرې اېښودل.

**جرګاوو** (jərgāwū́) ص. نر.م. مرکچي، مرکزن، د مرکې سړی، جرګه مار.

**جرګتو** (jərgatū́) نر.م. ۱) جرګتو، د جرګې مشر، د مرکې مشر؛ ۲) ص. نر.م. غونډه کوونکی، مجلسي، مرکچي.

**جرګه** (jərgá) ښځ.م. (ج. جرګې) ۱) غونډه، ولسي مجلس، ټولې، د مشورې مجلس، قومي غونډه ۲) ننواتې، مرکه؛ ۳) سلا، مصلحت.

**جرګه ګۍ** (jərgagáy) ښځ.م. وړه جرګه، فرعي جرګه، کوميټه، کميسيون.

**جرګه وال** (jərgawā́l) نر.م. د جرګې غړی، په جرګه کې برخوال.

**جرلګ** (jarlág) نر.م. ځلرګ، ځلرګه، خړرنګی اغزی دی.

**جرم**[1] (jorm) نر.م. ۱) تېروتنه؛ ۲) ګناه، جنايت.

**جرم**[2] (jirm) نر.م. ۱) جسم، کتله- اسماني اجرام؛ ستوري؛ ۲) مکروب؛ ۳) جنين؛ ٤) ريښه.

**جرمانه** (jarmānā́) ښځ.م. (ج. جرمانې) ناغه، جريمه، تاوان، مالي سزا، بانده، پړه.

**جرم پېژندنه** (jormpežandána) ښځ.م. د جرم علمي څېړنه، کريمينالوجي، کريمينولوژي.

**جرم کار** (jorəmkā́r) نر.م. گناهکار، مجرم.

**جرموره** (jarmoṛá) ښځ.م. غونداري، موره، هغه پارسوب چې د حشرې د چيچلو په سبب په پوستکي باندې پيدا کېږي.

**جرنگانی** (jrangānáy) نر.م. زنگ، تنگ تنگی.

**جرنگاوو** (jrangāwū́) نر.م. شرنگاوو، جرنگاوو.

**جرنگول** (jrangawə́l) مص. مت. شرنگول، شرنگول، جرنگول.

**جرنيل** (jarnáyl) نر.م. (ج. جرنيلان) ۱) جنرال، جنرېل، د پوځ لوی افسر؛ ۲) مغرور، مشروټ.

**جره** (۱) (jará) ص. نر.م. (ج. جره گان) ۱) مجرد، لونډ؛ ۲) يوازې، گوښی، تنها.

**جره** (۲) (jurə́) نر.م. (ج. جره گان) يو ډول باښه.

**جره توب** (jaratób) نر.م. بې ښځې توب، لونډ توب؛ جره والی، يوازېتوب.

**جري** (jarí) ص.نب ۱) تغيير خوړونکی، اوښتونکی؛ ۲) په گرامر کې اوښتی يا تغيير خوړلی شکل.

**جرۍ** (jarə́y) ښځ.م. لښتی لښتی، شپلۍ شپلۍ.

**جريان** (j(a,i)r yā́n) نر.م ۱) تگ، بهېدا، روانېدنه؛ ۲) حزبي ډله؛ ۳) جاري کېدنه؛ ٤) د برېښنا چلېدنه؛ ٥) ادامه، جاري، روان.

**جريب** (j(a,i)ríb) نر.م. د ځمکې د اندازه کولو يو واحد دی؛ د دوه زره مربع مترو مساحت.

**جريب کښ** (jəribkáṣ) نر.م. (ج. جريب کښان) جريب کوونکی، جريبگر، مساح، هغه څوک چې ځمکه جريبوي (اندازه کوي).

**جريبن** (jəribán) نر.م. جريبن، يو ډول گل دی.

**جريبول** (jaribawə́l) مص. مت. جريب کول، جريب کښي کول، جريبونه.

**جريده** (jaridá) ښځ.م. ۱) ښاخ، څانگه، منډه، خونگ؛ ۲) يادگار؛ ۳) ژورنال، مجله، اخبار، مهالنۍ، خپرونه..

**جريز** (jaríz) نر.م. شيره، اتوب، گرېي، اړوب.

**جريمه** (jarimá) ښځ.م (ج. جريمې) ناغه، جرمانه، بانده، تاوان، مالي سزا.

**جړ** (jaṛ) نر.م ۱) جړه، رېښه؛ ۲) ص.نر.م. تاوراتاو گډوډ؛ ۳) نر.م. ج. زهر.

**جړامبو** (jaṛāmbū́) ص. نب. ۱) تمبل، ستومانه؛ ۲) هغه کالي چې پر چا لوی او ارت وي.

**جړانگو** (jaṛā́ngu) نر.م. فلوس، پلوس، د يوه طبي بوټي نوم دی.

**جړاو** (jaṛā́w) ص. نب. پسوللی، سينگار، په گانه سنبال، گاڼلی.

**جړاوول** (jaṛāwawə́l) مص. مت. په ښکلو غميو ښکلی، په جواهراتو ښکلل.

**جړاوه** (jaṛāwá) ښځ.م. (ج. جړاوې) په غميو او جواهرو ښکلي شوي کالي.

**جړاوېدل** (jaṛāwedə́l) مص. ل. په غميو باندې ښکلی کېدل، په جواهرو ښايسته کېدل.

**جړبړ** (jaṛbáṛ) نر.م. جلاب، جولاب، جولاپ.

**جړپړ** (jaṛpáṛ) ص. نر.م. په يو بل کې نښتی، په يو بل کې ننوتی، انجړنجړ، گډوډ، پېچلی.

**جړپن** (jṛapán) ص. نر.م. اپلتي ويونکی، ډ تن.

**جړپول** (jṛapawə́l) مص. مت. ۱) ډتول، چتي غړوول؛ ۲) په لوښي کې د مايعاتو ښورول.

**جړپېدل** (jṛapedə́l) مص.ل. چتي غړېدل، کړتېدل، کړپېدل، اپلتې ويل.

**جړجړ** (jaṛjaṛ) نر.م. ۱) د اوبو د راتوېدلو اواز؛ ۲) چتي، پوچ، بې مانا، عبث، فضول.

**جړجړی** (jaṛjaráy) نر.م. جروبی، څړوبی، شرشره.

**جړک** (jṛak) نر.م. تکان، جړب، درز.

**جړکانی** (jarkā́nay) نر.م. زیاتی، سرباري، اضافه، علاوه، ورباندې زیاتونه.

**جړک جړوک** (jṛakjṛū́k) نر.م. لړزېدنه، غچاری غچهار، غنجاری

**جړمری** (jaṛmaráy) ښځ.م. زهر مهره، د زهرو ضد مری.

**جړموره** (jaṛmorá) ښځ.م. لړمې، لړمی، تمبکې، یو ناروغي ده چې په بدن سرې دانې راخېژي.

**جړند** (juṛánd) نر.م. و گ. جلغ.

**جړنگ** (juṛáng) نر.م. ځیلی، جوړنگ، جیړنگ، نار، د هندوانې، ختکي هغه برخه چې په ځمکه باندې اوږده تللې وي.

**جړنگاوو** (jṛangāwū́) نر.م. جړنگاک، شرنگاوو

**جړنگهار** (jṛangahā́r) نر.م. جړنگی، شرنگی، شرنگهار، شرنگا، د گېنگړیو اواز.

**جړوبی** (jaṛobáy) نر.م. و گ. جړجړی.

**جړه** (jáṛa) ښځ.م. ۱) د گلاب گل؛ ۲) ریښه، جرړه؛ ۲) بنیاد، ار.

**جړي** (jáṛi) ښځ.م. د سپي غپا پرله پسې اوازونه.

**جړی** (jaṛə́y) ښځ.م. ۱) پرله پسې باران؛ ۲) زهر موره؛ ۳) کانگی؛ ٤) د یوې ناروغۍ نوم دی؛ ۵) یو بوټی چې دغه ناروغي ځنې پیدا کېږي.

**جړې باجړې** (jaṛebājaṛe) ښځ.ج. چکاړ، چکړې، چیکړې، ختې، له بارانه پیدا شوې ختې.

**جز** [1] (jəz) نر.م. ۱) جغ، چغ، د سرو کړو غوږو یا داغلو اواز؛ ۲) چیچنه.

**جز** [2] (juz) نر.م. (ج. جزونه، اجزا) جزء، جزو، ذره، توک، برخه، حصه، د یوه شي یوه برخه.

**جزا** [1] (jazā́) ښځ.م. ۱) بدله، عوض، سزا (د نېکۍ یا بدۍ)؛ ۲) د مکافات ضد؛ ۳) ثواب.

**جزایل** (jazāyíl) نر.م. جرایل، غربین، د یوه پخواني توپک نوم دی.

**جزایلچي** (jazāyilčí) نر.م. رساوېشتونکی، نښه وېشتونکی، مېرگن، نښه باز.

**جزايي** (jazāyí) ص.نسب. ۱) د جزا، د جزاوو؛ ۲) مجازات شوی، تر جزا لاندې راغلی.

**جزبز** (jizbíz) نر.م. ۱) د بېهدیو لوبه؛ ۲) قهر، سوخت، په تاو کې، غوسه، غضب.

**جزبندي** (jozbandí) ښځ.م. جزو بندي، د کتاب یو راز ښه گنډنه ده.

**جزر** (jazə́r) نر.م. جغ. د مد ضد، د سمندر د اوبو کښېته کېدنه.

**جزع** (jazʕ) ښځ.م. بې صبري، بې قراري، بېره.

**جزع پزع** (jazʕapazʕ) ښځ.م. جزې پزې، نارې سورې، ځوږ، شور و فریاد، هلې ځلې.

**جزغاله** (j(i,u)zğā́la) ښځ.م. ززسوکی، جیجق، ځځغولی، گگړۍ، کسکر، بوگړۍ، کروپۍ.

**جزگی** (jəzgáy) ښځ.م. پوسکی، پسکۍ، باد.

**جزم** (jazəm) نر.م. ۱) غړوندی، د یوې کلیمې پای ساکنول یا یې د کوم حرف حذفول؛ ۲) اراده، یو کارته عزم کول؛ ۳) مضبوط، کلک؛ ٤) پرې کونه؛ ۵) لازمول او واجبول.

**جزول** (jəzawə́l) مص.مت. ۱) کباب یا غوښه په غوړیو کې سره کول؛ ۲) ځورول؛ ۳) د غوړیو جزهاری ویستل.

**جزهار** (jəzahā́r) نر.م. جزهاری، جزاری، جزجزی،

**جزېدل** (jəzedə́l) مص.ل. ۱) غوښه په غوړیو کې سره کېدل، د غوښې وریتېدل؛ ۲) ځورېدل، کړېدل.

**جزیره** (jazirá) ښځ.م. (ج. جزیرې) جغ. ټاپو، هغه وچه چې د اوبو په منځ کې وي.

**جزیره نما** (jaziranamā́) ښځ.م. ټاپو وزمه، یوه ټوټه ځمکه چې درې خـواوې يې په اوبـو او یوه خوا يې په وچه پورې نښتې وي.

**جزیه** (jaziyá) ښځ. م. مالیه، د ځمکې خراج، هغه مالیه چې یهـود او نصارا اسلامي حکـومت ته ورکوي او حکومت بالمقـابل ددوی ځـانونه او مالونه حمایه کوي.

**جزيي** (jozí) ص.نب. ۱) لږ، اندک، کم، لـږ وتي؛ ۲) بېل، جلا؛ ۳) جز ته منسوب.

**جزئیه** (joziiyá) ص. ښـځ. م. د «کلیه» خـلاف، جزئیه قضیه چې د یوې موضوع ځینو افرادو ته راجع شي.

**جژ** (jəž) نر.م. چش، د حیوان د وینو راوتلو اواز.

**جږکی** (jaẓkáy) نر.م. د وینې پشـکی ـ سال د حلالېدو په وخت د وینې اواز.

**جږمه** (jizmá) ښځ.م. زېـږمه، زېـږمه، د سترگې هغه برخه چې بانه پرې راشنه کېږي.

**جسارت** (jasārát) نر.م. ۱) زړورتیا، زړورتوب؛ ۲) سپین سترگي، بې حیایي، بې شرمي.

**جسامت** (jasāmát) نر.م. ۱) غټوالی، مزیتوب، پنډوالی، مزي والی؛ ۲) کتله، بدنه، اندازه.

**جست** (jast) نر.م. ۱) جس، زینک، رويي، د یـوه فلزي عنصر نوم دی؛ ۲) توپ، خېز، ترپ.

**جسته** (jastá) ښځ.م. چېلکو ته ورته د پښو کـولو یوه وسیله وه.

**جسد** (jasád) نر.م. ۱) تن، وجود، بدن؛ ۲) لاش، کالبوت، مړی، مړه بدنه.

**جسر** (jasár) نـر.م. ۱) بهېدونکې اوبه، مسـت اوبه؛ ۲) پُل، د پورې وتلو لاره، لرگین پول.

**جسم** (jísam) نـر.م. ۱) وجـود، تـن، بدن، ځتـه، پیری؛ ۲) تع. هر هغه څه چې ابعـاد ولري.

**جسماني** (jismānī́) ص. نب. جسـمي، بدني، د جسم، د جسم او بدن سره تړلی.

**جسور** (jasū́r) ص. نـر.م. ۱) زړور، د جسـارت خاوند؛ ۲) بې شرمه، بې حیا، ځیر سترگی.

**جسیم** (jasím) ص. نر.م. ۱) غټ، مضبوط، مزی؛ ۲) لوی، عظیم.

**جشن** (jašən) نر.م. ۱) خوشالي، ښادي، خوښي؛ ۲) ملي اختر، ملي خوښي، ملي خوشالي.

**جشی** (jišáy) نر.م. یو ډول اغزن بوټی دی.

**جعبه** (jaʕbá) ښځ.م. جابه، روک، راوک.

**جعفري** (jaʕfari) نـر.م. ۱) د یوه گـل نـوم دی؛ ۲) جالگی، سیکه، جالۍ.

**جعل** (jaʕál) نر.م. ۱) جوړښت، بناوټ؛ ۲) ساخته کاري؛ ۳) فریب؛ ٤) د غوشایانو گونگټ.

**جعل ساز** (jaʕalsā́z) فا.نر.م. جعـل کار، چلي، درغلي، دروهي، دوکه باز، غلوونکی، چالباز، جعلکار.

**جعلي** (jaʕlí) ص. نب. بدل، نقلي، تقلبي.

**جغ** (jəǧ) نر.م. ۱) ځغ، ژغ، پلنه تختـه چې د کـولبې په وخت د غـوایانو پر غاړه اېښـودل کېږي؛ ۲) په سرو غوږیو کې د لوند شي لوېدلو غږ.

**جغات** (jəǧā́t) نر.م. ۱) هڅـه، زیار، زحمت، ربړ؛ ۲) تاوان، زیان، نقصان.

**جغاغه** (jaǧāǧá) ښځ.م. یو ډول اغزن بوټی دی.

**جغانغه** (jaǧānǧá) ښځ.م. د چرگ تاج.

**جغاول** (jaǧāwál) نر.م. ۱) هغه مرغلین مزی چې د بازغاړې ته وراچول کېږي؛ ۲) امېل، هار.

**جغ بوز** (jaǧbóz) نر.م. پشوگی، چغبوز، یو ډول وښبته لرونکې چنجي.

**جغجغانی** (jaǧjaǧānáy) نر.م. غورندوز، ژرژری، غرندوز، د لرگي گرگرانی.

**جغدي** (jug̃dí) ص. نب. سوی، وریت.

**جغديتوب** (jug̃ditób) نر.م. وریتوالی، کبابېدنه.

**جغرافيايي** (jug̃rāfiyāyí) ص.نب. د جغرافيې، په جغرافيې پورې تړلی، جغرافيوي.

**جغرافيه** (jug̃rāfiyá) ښځ.م. جغرافيا، جيوګرافي، جغـرافـي؛ ۱) د بطليمـوس د يوه کـتاب نوم؛ ۲) ل. م. د ځمکې وصف يا احوال بيانونه.

**جغرۍ** (jağrə́y) ښځ.م. ونګا، کـوله، ونګلـېدا، انګولا، د سپي انګولا.

**جغړۍ** (juğrə́y) ښځ. م. د پښو د ګوتو د خوساکېدو له لامله د ګوتو د لاندنيو برخـو چاودېدل.

**جغله** (jağalá) ښځ.م. ميـده ريږ، کاڼ، شـينګـړ، ميده کاڼي، شګې، جغل.

**جغن پړی** (j(a,u)ğanpə́ṛay) نر.م. د ځغ پړی، د ژغ پړی، سربوڼې، هغه پړی چې د سپارۍ غشی له جغ سره تړي.

**جغندر** (joğandár) نر.م.ج. جوغندر، لبلبو.

**جغنډ** (jağánḍ) نـر.م. ۱) ژغنډ، ستېه، مـونډ؛ ۲) د ونې يا ستنې هغه برخه چې په تېره شي وهل شوې او يوه برخه يې ژوره شوې وي؛ ۳) برغنډ؛ ٤) مېخ، موږی.

**جغنډی** (joğanḍáy) نر.م. (ج. جغنډي) ژغنډی، هغه اوار لرګی چې په جغ کې ورکول کېـږي او د غويي ورمېږ په جغ کې ايساروي.

**جغول** (joğawə́l) مص. مت. ۱) سوځول، په زوره ننه ايستل؛ ۲) په جـغ کول، په جغ کې غـويان ايسارول.

**جغونډی** (joğunḍáy) نـر.م. (ج. جغـونډي) ژغونډی، يو ډول مارغه دی.

**جغه** (joğá) ښځ.م. (ج. جغې) ۱) کرکره، قـرقـره، تاج؛ ۲) شمـله، طـره؛ ۳) يو ډول بـوټي دی؛ ٤) چينه، چينې، چوڼانه، چوغه، شرقه.

**جغی** (jağáy) نر.م. ډولی، زمبېل، ځولی.

**جغېدل** (juğedə́l) مص.ل. سـوځېدل، په زوره په کې ننه کېدل. په زور په کې منډل کېدل.

**جفا** (jafā́) ښځ.م ۱) ظلم، جبر، ستم؛ ۲) بېوفايي، بې مهري، له بې علاقګۍ نه مخ اړونه.

**جفاکش** (jafākáš) ص.نر.م. خواري کښ، محنتي، زيار کښ.

**جفت** (joft) نر.م.ج. جوړه، غبرګ، غبرګون، جبی، جتی، د طاق ضد.

**جفتکه** (jofták̇a) ښځ.م. (ج. جفـتکې) په دواړو پښو، په غبرګو پښو خېز يا ټوپ اچونه.

**جوفتي** (joftí) ص.نب. جماع، مقاربت.

**جفر** (jafár) نر.م. (ج. جفاز) علـم الحروف، حروف پوهنه، د يو علم نوم دی.

**جفري** (jafrí) ص.نب. په علم الحروف پوه، د حروف پوهنې عالم، توري پوه.

**جق** (jaq) نر.م. جک، فضوله خبره، پرته، اپلته.

**جق جق** (jaqjáq) نر.م ۱) کوټ کوټ؛ ۲) بې ځايه او چتي چقېدنه او ګړېدنه.

**جقه** (jaqá) ښځ.م. (ج. جقې) ګڼه ګوڼه، ازدحام.

**جک** (jak) نـر.م. ۱) وګ. جق؛ ۲) داوسـو يو ډول فلزي يا پلاستيکي لوښی؛ ۳) د اوبو يو چينجی ۲) ځګ، د مستو شاربلو متی (چاټی).

**جکړ** (jakáṛ) نر.م. (ج. جکړونه) ۱) جاکـړ، باد و باران، توفان؛ ۲) ناراسته، لټ؛ ۳) تباهي.

**جکول** (jakawə́l) مص. مـت. ۱) په عبثو خبرو وخت ضايع کول؛ ۲) راکښـل، زور لګول، د مينې له امله په زور ايسارول.

**جکه جکه** (jakajaká) ښځ.م. اوږد بحث، مفصل بحث، اوږدې خبرې، ډېرې خبرې.

جکېدل (jakedə́l) مص. ل. منجهدل، په زور راکښل کېدل، د ځان د خلاصولو لپاره زور لګېدل.

جګ (j(i,a)g) ص. نر.م. ۱) دنګ، اوچت، لوړ؛ ۲) شخ، ولاړ، نېغ؛ ۳) نر.م. و.ګ. جک.

جګار (jagā́r) نر.م. جنګ جګړه، جنګ لګېدل.

جګ برېښ (jagbréṣ) نر.م. عس. سرپرکمشر، دوړو ضابطانو دربیمه رتبه.

جګپوړی (jəgpū́ṛay) ص. لوړمقامی، عالیجا.

جګپوړیز (jəgpūṛíz) ص. لوړپوړیز، اسمانڅک (وداني) بلند منزل.

جګتوب (jəgtób) نر.م. لوړوالی، دنګوالی، جګوالی، لوچتوالي، لوړتیا، جګتیا.

جګتورن (jəgtūrán) نر.م. عس. عسکري رتبه ده چې له ملکي څلورمې رتبې سره برابره ده.

جګ جګ (jigjíg) نر.م. غرچی، ډرچکی، دوه غوږيان په جنګ اچولو غږ.

جګ جګانی (jagjagānáy) نر.م ۱) جګ جګنی، شکشکه، اوسپنیز غشی چې د چرګانو ښکې وربانديې ویشتل کېږي؛ ۲) دبېړیو لوبه.

جګجګي (jagjigí) نر.م. د ښاروبو ښکرونه.

جګ جګی (jagjigə́y) ښځ.م. جار جار، ځار ځار، جګی، منت، ګجي ګجي، زارۍ.

جګ جوړ (jəgjór) ص.نر.م. جک جوړ، تندرست، روغ رمټ، ښېخي جوړ.

جګ خولی (jəgxū́lay) ص. نر.م. عس. هغه توپ چې جنګي الوتکې پرې ویشتل کېږي.

جګر (jigár) نر.م. ځیګر، سینه، تټر.

جګرخون (jigarxū́n) ص. نر.م. ځیګرخون، خواشینی، په کړاو اخته، کړېدونکی.

جګري (jigarí) ص. نب. دځیګر رنګه، قرمزي.

جګړ (jagáṛ) نر.م. ۱) کوډله، څپری، څپره؛

۲) خارخانه، په اوږې کې دکښناستو لپاره له څوزانو څخه جوړ شوی خونه.

جګړاوو (jagṛāwū́) ص.نب. جنګي، جګړن، جګړه مار، جګړیالی، جنګ غواړی.

جګړن (jagṛán) ص.نر.م. ۱) دملکي پنځمې رتبې برابر، د جګتورن او ډګرمن تر منځ عسکري رتبه؛ ۲) جنګیالی، جنګي.

جګړول (jagṛawə́l) مص.مت. و.ګ. جنګول.

جګړه (jagṛá) ښځ.م (ج. جګړې) ۱) جنګ، حرب، نښته. ۲) شور، لړایي.

جګړه ایز (jagṛaiíz) ص.نر.م. ۱) د جګړې؛ ۲) نر.م. جنګي او محاربوي احضارات.

جګړه مار (jagṛamā́r) ص. نر.م. ۱) و.ګ. جګړاوو؛ ۲) جنجالي؛ ۳) جنګ تودوونکی.

جګړیځ (jagṛī́ǰ) ص. نر.م. جنګړه، جنګي.

جګړېدل (jagṛedə́l) مص.ل. و.ګ. جنګېدل.

جګغاړی (jəgğā́ṛay) ص. و.ګ. :جګلاوو.

جګل (jagál) ص. نر.م. ۱) نېغ، مونډی، مېښته؛ ۲) اخته، لګیا، ورته، تمه، مته.

جګلاوو (jəglāwū́) ص. نب. ۱) دنګ، لوړ، جګ، ډینګ؛ ۲) بې وقوفه، بې عقل.

جګمېچ (jəgméč) ا. لوړواله سنجوونکی، ارتفاع سنج.

جګناتی (jagnātə́y) ښځ.م. کوره سان، کوره ململ، مارکین، مالکین.

جګواله (jəgwā́la) ښځ.م ۱) لوړوالی، جګوالی، ارتفاع؛ ۲) قد، ونه.

جګول (jəgawə́l) مص.مت. ۱) اوچتول، پورته کول؛ ۲) پاځول، ویښول؛ ۳) دېوال اوچتول؛ ٤) یو شی نېغ درول؛ ٥) پارول، لمسول؛ ٦) لرې کول، اپسته کول؛ ۷) خېژول.

**جګوله** (jagwə́la) ښځ.م. جګولې، چنار، عرعر.

**جګه** (۱) (jəgá) ص. ښځ.م. اوچته، نهغه، لوړه.

**جګه** (۲) (jigá) ص. ښځ.م. نکاح شوې ښځه، مېړونه، نکاښکلې.

**جګۍ** (jigáy) ښځ.م. زارۍ، منت، خوارۍ.

**جګی** (jəgáy) ص.نر.م. جګ غوندې، لوړ وچکې، د جګ تصغیري شکل.

**جګې جګې** (jəgéjəgé) ښځ.م. ۱) هرکله راشې، ښه راغلې؛ ۲) د خواست کلیمه.

**جګېدل** (jəgedə́l) مص. ل. ۱) اوچتېدل؛ ۲) وینېدل؛ ۲) نبغ درېدل؛ ۳) یاغي کېدل.

**جل** (۱) (jal) نر.م. ۱) تود باد؛ ۲) لمړوهنه؛ ۳) له باغ نه چارچاپېر د غنو باړ یا وېره؛ ٤) له کلا څخه چارچاپېر خندق؛ ٥) ښځ.م. جلۍ، نجلۍ؛ ٦) وړکېی، کوچنوټې؛ ۷) یوه مرغۍ ده.

**جل** (۳) (jul) نر.م. ۱) ښکېدل، خوځېدل؛ ۲) د کور د مال اسباب لپاره د جهاز له کلیمې سره یوځای استعمالېږي.

**جلا** (jalā́) ص.نب. ۱) بېل، یوازې، ځانته، ځانګړی ۲) ښځ.م. څلک، ځله، چنک.

**جلاب** (j(a,u)lā́b) نر.م. ۱) جاړ، مسهل، جولاپ، د عمل راوستو دارو؛ ۲) جلب کوونکی، ښکاوو ۲) مال او یا جنس په ارزان قیمت رانیوونکی او په لوړ قیمت خرڅوونکی.

**جلات** (jalā́t) نر.م. ۱) پوست ایستونکی، د ښرې وهونکی؛ ۳) سرپرېکوونکی، جلاد؛ ٤) ظالم.

**جلاتوب** (jalātób) نر.م. جلاوالي، بېلتون.

**جلاجل** (jalājál) نر.م. ګینګرې، هغه زنګونه چې د څرمنې په پټه اود څارویو غاړو ته ور اچوي.

**جلا جلا** (jalājalā́) ق. بېل بېل، ګوښې ګوښې، جدا جدا، ځانله ځانله، تنها تنها.

**جلادي** (jalādí) ښځ.م. ۱) د جلات کار او عمل؛ ۲) سخت زړه توب.

**جلار** (jalā́r) نر.م. (ج. جلارونه) د نهر ارهټ، د ویالې ارهټ، د ویالې په سر ارټ.

**جلال** (jalā́l) نر.م. لوییي، لوی والی، ښان او شوکت.

**جلالتماب** (jalālatmaā́b) نر.م. اعزازي لقب دی.

**جلاله** (jalālá) ښځ.م. چینه، دجاري اوبو سرچینه.

**جلالي** (jalālí) ص.نب. ۱) جلال لرونکی، د خدای تعالی یو صفت دی؛ ۲) قهرجن، قهرېدونکی؛ ۳) د درویشانو یوه طریقه ده چې سید جلال الدین بخاري پورې اړه لري.

**جلاوطن** (jalāwatán) نر.م. ۱) پردېس، مسافر؛ ۲) فراري، تبعید شوی.

**جلاوطني** (jalāwataní) ا. جلا هېوادي، مهاجر.

**جلایش** (jalāyíš) نر.م. ځلا، چنک، چرک، جلا.

**جلاینه** (jalāéna) جلا کونه، بېلونه، تفرقه.

**جلب** (j(a,i)lb) نر.م. ۱) کښنونه، ښکونه، جذبونه متوجه کونه؛ ۲) عسکري خدمت ته حاضرونه ۳) ملګرتیا، له مېلمه سره د رخصتېدو په وخت دڅو قدمه ملګرتیا کول؛ ۲) ملونه، جلونه، دڅاروي دغاړې پړی.

**جلباب** (jalbā́b) نر.م. ۱) پړونی، پوړنی، څادر، تهکری؛ ۲) ص. نر.م. زوړ، ضعیف، ناتوانه

**جلبل** (jalbál) ص. نر.م. ۱) سوی، لوغړن، ستې؛ ۲) روښانه، ځلېدونکی؛ ۳) ښکلی شوي.

**جلبلی** (jalbaláy) نر.م. روښانه، ځلېدونکی.

**جلبنګ** (jalbáng) نر.م. ۱) یو ډول خوشبویه واښه؛ ۲) یو ډول بوټی دی چې له لرګي نه یې سرنی جوړوي

**جلبول** (jalbawə́l) مص. مت. ۱) پام راګرځول، متوجه کول؛ ۲) حاضرول، راغوښتل.

**جلبي** (jalbí) ص. نر. ښځ.م. (ج. جلبيان) جلب شوی، غوښتل شوی، حاضر شوی.

**جلبۍ** (jalabə́y) ښځ.م. ځلوبی، ځلیبی، یو ډول خواږه دي چې په غوړو او تېلو کې پخېږي.

**جلبېدل** (jalbedə́l) مص.ل. ۱) متوجه کېدل؛ ۲) حاضرېدل، راغوښتل کېدل.

**جلت** (jalt) ص.نر.م. ج. ۱) جلد، تېز، چست، چالاک؛ ۲) څرګند، جوت.

**جلتول** (jaltawə́l) مص.مت. ۱) تېزول، چستول، چالاکول، متې کول، اوچتول.

**جلته** [1] (jalatá) ښځ.م. اوږده سرپوښنه ټوکری چې دونو له نریو څانګو څخه جوړېږي.

**جلته** [2] (jaltá) ښځ.م. انډېری، پنډېری، هغه کندو چې د مزرو یا د ونو له څانګو څخه جوړېږي.

**جلتي** (jaltí) ښځ.م. تېزي، چالاکي، ګړندیتوب، بېړه، شتاب.

**جلتېدل** (jaltedə́l) مص.ل. تېزېدل، چالاکېدل، ګړندی کېدل، وندی کېدل، متې کېدل.

**جلد** (jeld) نر.م. ۱) څرمن، پوستکی؛ ۲) د کتاب دوتنه، پښتی؛ ۳) د کتاب یوټوک.

**جلد بندي** (jildbandí) ښځ.م. کتاب ته وقایه ورکول، د کتاب وقایه، د کتاب پوښ.

**جلدګر** (jildgár) فا.نر.م. صحاف، هغه څوک چې د کتاب ګنډلو، جوړولو او پوښ یا وقایې ورکولو کار کوي، دوتنیار.

**جلدي** (jildí) ص.نب. د پوستکي، د جلد، په جلد پورې اړوند.

**جلسه** (jalasá) ښځ.م (ج. جلسې) ۱) غونډه، ناسته ۲) محفل، مجلس؛ ۳) په لمانځه کې قعده.

**جلغ** (jiláğ) نر.م. ۱) جیلغ، زېلی، تانګ؛ ۲) د چار مغزو غوټچه، د مټکو ګونګی.

**جلغوزه** (jalğozá) ښځ.م. و ګ. جنغوزه.

**جلغه** [1] (jalğá) ښځ.م. د پوستین څرمن، د پوستین پوستکی.

**جلغه** [2] (jilğá) ښځ.م. بدملګری، خراب ملګری.

**جلک** (jalák) نر.م. غوټه، څرخی، تکله، کلوله، د تارونو او سنیو غونډاری.

**جلکه** (jalká) ښځ.م. جټکه، ټکان، ډکه، جړک.

**جلکۍ** (jəlkə́y) ښځ.م. جلۍ، نجلۍ، جینکۍ، جنکۍ، جنۍ، وېړکې، جلګوټې، نجلوټې.

**جلګه** (jalgá) ښځ.م. (ج. جلګې) ۱) چمنګی، د وښو او له کبلو ډکه ځمکه؛ ۲) شاړه ځمکه؛ ۳) هدیره؛ ٤) جغ. هواره او پراخه شنه ځمکه.

**جلنانۍ** (jalnānə́y) ښځ.م. پخلنځی، اشپزخانه.

**جلندري** (jalandráy) نر.م. د ژرندې پل.

**جلندرۍ** (jalandrə́y) ښځ.م. مومجامه، منجامه.

**جلو** (jiláw) نر.م. ۱) ملونه، کیزه، جلب؛ ۲) مخه، مخ؛ ۳) سپرلۍ، سورلي.

**جلوت** (jalwát) ص. نر.م. ښکاره، څرګند، جوت.

**جلوس** (jolús) نر.م. ۱) ناسته، کېناسته؛ ۲) د پادشاهانو تخت ناسته؛ ۳) غونډه، ټولنه؛ ٤) مظاهره.

**جلوګیري** (jilawgirí) ښځ.م. مخنیوی، کنټرول.

**جلوه** (jelwá) ښځ.م. ۱) نور، تجلی؛ ۲) ځلا، برېښ، ځلېدنه، رڼا، نظاره، ښکاره کېدل.

**جلوه ګر** (jelwagár) فا.نر.م. ځلېدونکی، برېښېدونکی، جلوه کوونکی.

**جلي** (jalí) ص. نب. ۱) ښکاره، څرګند، روښانه؛ ۲) صیقل شوی؛ ۳) ص.نر.م.خ. هغه لیک چې لوی، روښانه کښل شوی وي؛

**جلۍ** (jaláy) ښځ.م. ۱) چیغه، چوغه، شور ځوږ؛ ۲) د سپي غپا؛ ۳) و ګ. نجلۍ.

جليا (jalyā́) ص. نب. سوی، لوی، وریت.
جلي بلي (jalíbalí) ښځ.م. منت، زاري، شور، فریاد، واویلا.
جلیس (jalī́s) نر.م. یار، ملګری، اندیوال، اشنا.
جلیل (jalī́l) نر.م. ۱) لوی، ستر، محترم، درونډ؛ ۲) د خدای (ج) یو صفت دی؛ ۳) ص. نسر.م. خ. یو ډول لیک دی چې د لیکـونو د پـلار په نامه یاد شوی دی او د خلفاوو له خوا به پاچهـانو ته خطونه پرې لیکل کېده.
جلی مار (jalaymā́r) فا.نر.م. ۱) شور کوونکی؛ ۲) جلی باز، دختر باز، زنکه باز.
جم (jam) نر.م. ۱) جاکړ، جکړ؛ د باد او باران توپان؛ ۲) قبیله، کورنی؛ ۳) راغونډ، ټول.
جماتي (jumātí) نر.م. جماعتي، ۱) خادم، چوپړ، د جومات خدمتګار؛ ۳) ټولګي وال.
جماع (jimā́ʕ) ښځ.م. کوروالي، مقاربت.
جماعت (jamāʕát) نر.م. ۱) غونډه، ټولی، ټولنه؛ ۲) مسجد؛ ۳) صنف، ټولګی؛ ٤) ټولېدنه.
جمال (jamā́l) نر.م. ښکلا، ښایست، حسن.
جمالکوټه (jamālkoṭá) ښځ.م. یو مـاده ده چې د جلابو لپاره د دوا په توګه په کارېږي.
جمالي (jamālí) ص.نب. ۱) د جمـال، د ښـکلا؛ ۲) درحمت دشـان تجلـی؛ ۳) یو ډول خـټـکی؛ ٤) په بلوچستان کې د یوې قبیلې نوم.
جمامه (jamāmá) ښځ.م. منـدو، جـومیا، اینده، تریک، جمیا، د شـرشمو یا ترباکـو په څېر یو بوټی دی چې تېل ځنې باسي.
جمباز (jambā́z) نر.م. و ګ. جامباز.
جمبړ (jambā́ṛ) نر.م. زړې جامې، ورستې جـامې، بهکاره جامې، خونجاړې، خونډرې.
جمبوښ (jamboṣ́) نر.م. ګنه ګونه، ګڼ خلک.

جمبه (jambá) ښځ.م. (ج. جمبې) ۱) جنبه، پره، مرسته، پلـوي؛ ۲) ص. نب. ډله، طرفدار.
جمبه پره (jambapará) ښځ.م. پره جمبه، طرفداري، مرسته، ډله بازي.
جمپ (jamp) نر.م. توپ، ځغز، ورټنه، جست.
جمپر (jampár) نر.م. هغه کمیس چې لنډ لستوڼي لري (بلوز).
جمجکړ (jamjakáṛ) نر.م. باد و باران، جاکړ.
جمجکی (jamjakáy) نر.م. دبهدیو یو ډول لوبه.
جمجمه (jamjamá) ښځ.م. کـکـری، کـپړی، کوپړی، کوپړی، د سر کاسه، د سرکوپړی.
جمجمې (jamjamé) ښځ.م. د تنـدې یا تندې یو ډول ګانه ده.
جمدانی (jamadānáy) ښځ.م. نری سپین ټوکر.
جمدر (jamdár) نر.م. ۱) جندر، یو ډول خنجر دی چې دواړې خواوې یې تېرې دي؛ ۲) جودر.
جمدرګوټی (jamdargoṭáy) نر.م. کوچنی خنجر وړوکي جمدر، د جمدر تصغیر.
جمع (jamʕ) ښځ.ج. ۱) غونډ، ټول، یو ځای، کل؛ ۲) دحساب یوه قاعده، د څو عددونو د یو ځای کولو اود یوه عدد د راایستلو عملیه.
جمع بندي (jamabandí) ښځ.م. ۱) دمـالیې یا قلنګ حساب؛ ۲) د ځمکې حـاصل؛ ۳) جمع کونه، ټولونه.
جمعه (jumʕá) ښځ.م. ادینه، د هفتې اوومه ورځ.
جمعي (jamʕí) ص.نب. د جمع، د جمع په ډول.
جمعیت (jamʕiyát) نـر.م. ۱) غـونډه، ټولـنه، مجلس، ګڼه؛ ۲) تسلي، ډاډ، خـاطـر جمعي؛ ۳) نفوس؛ ٤) شتمني، بډایي.
جمعیت العلماء (jamʕiyatulʕulamā́) نر.ج. د علماوو ټولنه.

**جمګي** (jumagí) ښځ.م. ۱) د جمعې، د اونۍ؛ ۲) په نوي مړي پسې د جمعې په شپه خیرات.

**جمله** (jumlá) ص. نب. ۱) ټول، واړه، ګرده، کل؛ ۲) ښځ.م. فقره؛ د هغو کلیماتو مجموعه چې یو بشپړ مفهوم ترې لاس ته راشي.

**جمله بندي** (jumlabandí) ښځ.م. جمله جوړونه.

**جملي** (jamalí) ص.نر.ج. غبرګوني، بغرګوني.

**جمنازیم** (jamnāzyám) نـر.م. د بدني روزنې ځای، د ورزش ځای.

**جمناستیک** (jamnāstík) نـر.م. بدني روزنـه، ورزش، غړي رمونه.

**جم وجوش** (jamojóš) نر.م ۱) ګڼه ګوڼه، ازدحام؛ ۲) ډېروالی، پرېماني؛ ۳) خوشحالي، ساتېري.

**جمود** (jamū́d) نر.م. ۱) بې حرکته کېدنه؛ ۲) یخ وهنه؛ ۳) افسردګي، مړاوېتوب.

**جمهور** (jamhū́r) نر.م. ۱) ولس، جمعیت، عـام خلک؛ ۲) زیات، ډېر.

**جمهوري** (jamhūrí) ص. نب. ولسي، عـوامي، د عامو خلکو، د ولس، دعوامو، د اکثریت.

**جمهوریت** (jamhūriyát) نر.م. دخلکو حکومت، ولسي حکومت، ولسواکي.

**جمیا** (j(a,u)myā́) ښځ.م. توریک، تولپک، جمامه، د شړشمو په څېر یو نبـات دی چې له دانو څخه یې تېل باسي.

**جمیل** (jamíl) ص.نر.م. ښکلی، ښایسته.

**جن**(۱) (jən) ښځ.م. ۱) جنی، نجلۍ، جلۍ، وېږکیې؛ ۲) په لغت جوړونه کې د ځینو صفتونو لاحقه- د دروغ څخه دروغجن.

**جن**(۲) (jin) نر.م. ۱) پېرۍ، یو مـوجـود دی چې په سترګو نـه لیدل کـېږي؛ ۲) بیـا. ژن، پـه کروموزوم کې د ارثي صفتونو نقلوونکی.

**جناب** (janā́b) ص. نـر.م. ۱) حضـرت، حضور، صاحب؛ ۲) درګاه؛ ۳) ښاغلی، محترم.

**جنابت** (janābát) نر.م. جنوبتیا، ناپاکي.

**جناح** (janā́h) نر.م. ۱) وزر؛ ۲) اړخ، پلو، برخه؛ ۳) مټ، بازو؛ ٤) اص. ډله، ګوند، جریان.

**جنازه** (janāzá) ښـځ.م. ۱) مـړی؛ ۲) هغـه مړی چې په کټ یا تابوت کې اېښودل شوی وي.

**جن او انس** (jin aw íns) نر.ج. پېرۍ او انسان، انس و جن.

**جنایت** (jināyát) نر.م. ګناه، جرم، لوی جرم.

**جنایتکار** (jināyatkā́r) فـا.نر.م (ج.جنایتکاران) مجرم، جاني، جرم کوونکی.

**جنایي** (jināyí) ص. نب. ۱) جنـایت کار، مجرم، جاني؛ ۲) جنایت سره تړلی.

**جنب** (junúb) ص. نر.م. ۱) ناپاک، ناولی، پر هغه چا چې لوی اودس واجب شوی وي؛ ۲) غریب، خوار؛ ۳) لرې، پردی.

**جنباز** (janbā́z) نر.م. ۱) د اوښ یا دخاروي ناهواره یا په تریکـو سره تګ؛ ۲) د سیند څپې.

**جنبازي** (janbāzí) ښځ.م. ۱) دجنکـو لـوبې، له ګوډیو یا نانځکـو سره ځـان بوختـونه؛ ۲) له لرګي نه نانځکې او ناوې جوړونه.

**جنبان** (janbā́n) نر.م. خوځېدونکی، خـوځند، لړزېدونکی، متحرک.

**جنبش** (janbíš) نر.م. حرکت، خوځېدنه، پرمختګ.

**جنبک** (junbák) نر.م. ۱) یو پـه بل کې ننـوتی؛ ۲) ګڼ، ګور؛ ۳) ځونډی.

**جنبه** (janbá) ښځ.م. (ج. جنبې؛ پـره، طـرفداري، حمایت، جمبه، پلو، خوا، ننګه، ډله.

**جنپا** (janpā́) ص. نر.م. ج. مو. د یوه مروج تال نوم دی چې اووه ماترې لري.

**جنت** (janát) نر.م.(ج.جنتونه) بهشت، فردوس.

**جنت الفردوس** (janatulfirdáws) نر.م. د جنتونو سر، په اتو واړو جنتونوکې اعلی جنت.

**جنتر** (jantár) نر.م. (ج.جنترونه) ۱) منتر، توټکه، دم؛ ۲) بیم، یو ډول باجه.

**جنترمنتر** (jantarmantár) نر.م. ۱) مار دمونه؛ ۲) کوډګري، نظربندي، ټګي؛ ۳) رصد خانه.

**جنتري** (jantarí) ښځ.م. کلیزه، تقویم.

**جنتي** (janatí) نر.م. (ج. جنتیان) ۱) جنت ته تلونکی؛ ۲) ښه سړی، نېک سړی.

**جنټکس** (jinitíks) نر.م. بیا. د پیدا کېدنې علم، نسل پېژندنه.

**جنټلمین** (jintalmáyn) نر.م. ۱) ښاغلی، ځوانمرده، باوقاره سړی؛ ۲) فېشني.

**جنج** (janj) نر.م. (ج. جنجونه) ورابانې، ورروځي، ورایېز، د واده مېلمانه.

**جنجاړی** (janjāṛáy) ص.نر.م. (جنجاړي) خنجر، مړاوی، مرخپن، جینګړ، شیته.

**جنجال** (janjā́l) نر.م. ۱) کشاله، لانجه، معامله؛ ۲) ناآرامي؛ ۳) پرېشاني، مشکل.

**جنجالي** (janjālí) ص. نب. جنجال کوونکی، لانجه مار، نا ارامي پیدا کوونکی.

**جنجالی** (janjāláy) نر.م. (ج. جنجالي) یو بوټی دی پاڼې یې شنې او ګلونه یې ژیړ وي.

**جنجړ** (jinjár) نر.م. (ج. جنجړان) ۱) جینجړ، سور جینجړ، خاکشیر؛ ۲) جنجړک، د مترو او دې ته ورته غلو نرۍ نرۍ دانې.

**جنجړ** (jinjə́r) ص. نر.م. مړاوی، پژمرده، شیته.

**جنجړې** (janjaráy) ښځ.م. ۱) ذمه، ذمه واري، په ذمه؛ ۲) پروتې، پېروتې، یو بوټی دی.

**جنجل** (janjál) نر.م. یوه غرنۍ ونه ده.

**جنجوټي** (jinjotí) ص. نب. مو. د یوه طرز نوم دی چې له بیروي او بیهاګ څخه منځ ته راغلی.

**جنجڼ** (jənján) نر.م. ۱) تولی، تش کارتوس، نلی؛ ۲) دالوان توټه؛ ۳) د زخم پاړسوب؛ ٤) مړاوی؛ ۵) یو ډول بوټی دی؛ ٦) د کوترو د خوراک یو ډول دانې.

**جنجوړک** (jənjurák) ص. نر.م. هغه څوک چې شکمنې خبرې کوي.

**جنجوړیا** (janjuryā́) ص. کوت کوت، ګونجې ګونجې، ګونځې ګونځې، چرموړکی.

**جنجی** (janjáy) نر.م. ۱) په وراتلونکی، ورروځی، له جنج سره تلونکی؛ ۲) د کبانو د نیولو جال.

**جنحه** (janhá) ښځ.م. وړه ګناه، کوچنی جرم.

**جند**[۱] (jand) نر.م. ځان، د زړه توټه، خوږ.

**جند**[۲] (jund) نر.م. فطرت، اصل، بنسټ، اساس.

**جندر**[۱] (jandár) نر.م. ۱) بنیاد، ار، بېخ، بنسټ؛ ۲) جمدر، خنج.

**جندر**[۲] (jundár) نر.م. (ج. جندرونه) ۱) د نیزې څوکه؛ ۲) غشی؛ ۳) پنجره.

**جندرا** (jandrā́) ښځ.م ۱) مانجه، منداو، غاښور، راکول؛ ۲) د خاورو پنج غاښی؛ ۳) کولپ، قلف ٤) د زرګرانو د تارو راباسلو آله.

**جندره ګر** (jandragár) ا. کولپ جوړوونکی.

**جندکه** (jindáka) ښځ.م. پیسه، فلوس.

**جنډ** (jand) ص. نر.م. ټینګ، استوار، نېغ ولاړ.

**جنډا** (jandā́) ص. نر.م. ۱) لالچي؛ ۲) حریص، وږستر ګی، وږی سولی، تمه دار.

**جنډه** (jandá) ښځ.م. (ج. جنډې) ۱) بیرغ، توغ، جنډی؛ ۲) زړه جامه، خوندري، خونجاړي.

**جنډی** (jandə́y) ښځ.م. ۱) جنډه؛ ۲) د اور ګاډي (ریل) کوچنی تم ځای.

جنډۍ (jundáy) نر.م. څونډۍ، وتۍ، پوپک، گل.

جنرال (janrā́l) ص. نر.م. (ج. جنـرالان) په پـوځ کې تر ډگروال لوړه رتبه، سرلښکر.

جنس (jins) نر.م. (ج. جنـسونه) ١) خپـل، ډول، نوع؛ ٢) اصـل، نسـل، نـژاد؛ ٣) شی، څیـز؛ ٤) مال، اسباب؛ ٥) د غلې پور.

جنساً (jinsán) ق. په خپله، کټ مټ، عيناً.

جنسي (jinsí) ص. نب. ١) دمال، دجنس، دشيانو ٢) د شهوت، د شوق.

جنسيت (jinsiyát) نر.م. ١) مـاهيت، کيفيت، نوعيت؛ ٢) يو رنگه توب، يو شانتـه توب، يو ډول والی؛ ٣) د نارينه يا ښځينه جنس.

جنغوزی (janğozáy) نر.م. زنغـوزی، چنغـوزی، څنغوزی، نغوزی، نړغوزی، زړغونځی.

جنکۍ (jinakáy) ښځ.م. وگ. نجلۍ.

جنگ[١] (jang) نر.م. ١) وگ. جگړه؛ ٢) دښمني، مخالفت، بدي، عداوت.

جنگ[٢] (jung) نر.م. وگ. جونگ.

جنگ اچوونکی (jangačawū́nkay) فـا. نـر.م. جنگ جوړوونکی، جنگ تودوونکی.

جنگ بوټی (jangbū́ṭay) نر.م. پروتي، پېروتي، يو ډول بوټی دی.

جنگ جدل (jangjadál) نر.م. جگړه، شخړه.

جنگجو (jangjó) ص. نب. جگړه مار، جگـړاوو، جنگي، جنگ کوونکی، جنگيالی.

جنگ ځای (jangǰā́y) نـر.م. د جنگ ميـدان، د جگړې ډگر، د ښتې سيمه.

جنگره (jangərá) ص. نر.م. جنگي، جگړه مار.

جنگره (jangrá) ښځ.م. ښـاخې، سکو.

جنگرېز (jangréz) نـر.م. ١) د جنگ ميـدان، د جگړې ډگر؛ ٢) له جنگ نه په شا تلنه.

جنگړه (jangṛá) ښځ.م. جاړ، زمبر، جمبره، څنگل، د بوټو څنگل.

جنگغالی (janggā́lay) ا. جنگ ډگـر.

جنگله (jangalá) ښځ.م. څنگله، دلاری بام.

جنگنی (jənganáy) نر.م. هغه ورغومی چې په ژمي کې پيدا شوی وي، ژمگنی هم ورته وايي.

جنگوری (jangūráy) نـر.م. اخ وډب، ښـته، شخړه، جگړه، جنگ، جنجال.

جنگول (jangawə́l) مـص. مـت. ١) ښلـول، په جنگ سره اچول، بدول؛ ٢) ټکرول.

جنگه (jangá) ښځ.م. ١) د يـوې موټې، د سپارې موټانی، د قولبې موټی؛ ٢) ډېره گټه.

جنگي (jangí) ص. نـب. ١) جنگـيالی، تـورزن؛ ٢) د جنگ، له جنگ سره اړه لرونکی.

جنگی (jəngáy) نر.م. نيکر، جانگی، چوته.

جنگۍ (jangə́y) ښځ.م. ١) گـنه باغـچـه، وړوکی څنگل؛ ٢) اوږدې وړينې جورابې؛ ٢) جاکټ.

جنگيالی (jangyā́lay) ص. نر.م. سرباز، تورزن، مېړنی، زړور، شجاع، د جگړې ماهر.

جنگياليتوب (jangyālitób) نـر.م. تورزنتوب، توريالیتوب، مېړنتوب، زړورتوب.

جنگي بېړه (jangiberá) ښـځ.م. بحـري پوځ، سمندري پوځ، سمندري قوا.

جنگي جهاز (jangijəhā́z) نر.م. جنگي بېړی.

جنگېدل (jangedə́l) مص. ل. ١) جگـړه کـول، سره ښتل؛ ٢) ټکر کېدل، سره لگېدل.

جنم (janám) نر.م. ١) بڼه، څېـره، جوسه، صورت؛ ٢) ختيه، نسل، ذات؛ ٣) ژوند، عمر.

جنوالی (jənwā́lay) نر.م. جلکی توب، پېغلتوب.

جنوب (jonū́b) نـر.م. ١) سوېل، سوهيل، د شمال مقابل؛ ٢) وگ. جنب.

**جنوب ختیځ** (jonūbxatíź) نر.م. جنوب شرق، د سوېل ختيزه سيمه.

**جنوب لوېدیځ** (jonūblwedíź) نر.م. جنوب غرب، جنوب لوېديزه خوا.

**جنوتاړی** (jinotāṛáy) نر.م. ښځونکی، هغه هلک چې د جينکو غوندې خويونه لري.

**جنوتې** (jinoṭé) ښځ.م. وړه جنکۍ، کوچنۍ نجلۍ، جينۍ، پېغلوټې، پېغلوکې.

**جنون** (junū́n) ص. نر.م ۱) لېونتوب، بې‌سدي؛ ۲) خوشکه، غصه، قهر، سوخت، شدت.

**جنۍ** (jinə́y) ښځ.م. و.گ. نجلۍ.

**جنیکوکراسي** (jinikokrāsí) ص. ښځ.م. د ښځو حکومت، د نسوانو حکومت.

**جنیکولوجي** (jinikolojí) ښځ.م. د ښځينه ناروغيو پوهنه، د زنانه امراضو علم.

**جنین** (janín) نر.م. ۱) هر پټ او پوښلی شی؛ ۲) په ګېډه کې، جنين، بوتی، سخره، هغه اولاد چې د مور په خېټه کې وي.

**جڼ** (jaṇ) نر.م. شرنګ، د بنګړو د شرنګا.

**جنجڼ** (janjáṇ) نر.م. يو ډول کارتوس دی.

**جنجڼک** (jənjaṇák) ص. نر.م. ډډه کوونکی، ځان ساتونکی، پلمه کوونکی.

**جڼه جڼه** (jaṇajaṇá) ښځ.م. ۱) حيله، چم، چل، تګي، پلمه؛ ۲) شکمنې خبرې.

**جو** [1] (jo) نر.م. جوړ، شايد، ګني، بس، ګوندې.

**جو** [2] (jaw) نر.م. هوا، وته، ډنډ، تشه، شين ډنډ، اتموسفير، د ځمکې او اسمان ترمنځ.

**جوا** (jawā́) ښځ.م. جواري، پروېشتنه، شرط.

**جواب** (jawā́b) نر.م. و.گ. ځواب.

**جوابي** (jawābí) ص. نب. ۱) په ځواب کې، د ځواب، ځوابي؛ ۲) منکر، انکاري.

**جوات** (jawā́t) ص. نر.م. جوت، ښکاره، څرګند.

**جواد** (jawā́d) ص. نر.م. سخي، ځوانمردي، لنګرې بخشاوړ، ځوان.

**جوار** (jawā́r) جن. ۱) جواري، يو ډول غله ده؛ ۲) نر.م. ۱) ګاونډ، ګاونډيتوب؛ ۲) د چا په ګاونډيتوب کې پناه غوښتنه.

**جوارسبزي** (jawārsabzí) ښځ.م. سارمې يا رنځکه يو ډول سابه.

**جوارګر** (juwārgár) فا. نر.م. ۱) هغه څوک چې جوار په کې کرل شوي وي؛ ۲) قمارباز.

**جواري** (jawārí) ښځ.م. (ج. جوارۍ) قمار.

**جواری** (juwāráy) نر.م. جوارينه، سوړسک، سوکړک، ګډلی؛ ۲) جوارو وړی.

**جوارۍ** (juwārə́y) ښځ.م. ۱) پوچ وړی، د جوارو پوچ وړی؛ ۲) ښځ.ج. د قمار جمع، قماربازي.

**جواز** [1] (jawā́z) نر.م. ۱) جايز، روا، جايز کېدنه، رواکېدنه؛ ۲) اجازت، رخصت، اجازه‌ليک.

**جواز** [2] (jwāz) نر.م. ګينی، ګانۍ، هغه آله چې د کونځلو غوړي وربانديې ايستل کېږي.

**جوازلیک** (jawāzlík) نر.م. جوازخط، جوازنامه، اجازه‌نامه، لايسنس.

**جوال** (juwā́l) نر.م. غوندی، بوری، ګونۍ، کندرۍ.

**جوالي** (juwālí) نر.م. پنډي، پېړي‌واله، پلنډي.

**جوالیتوب** (jwālitób) نر.م. پنډيتوب، په‌شا پيتی وړنه، حماليتوب، پنډوکمار.

**جوانوان** (juwānwā́ṇ) نر.م. جمامه، د تربک دانې.

**جوانه** (jwāná) نر.م. درې کلن سخوندر.

**جواهر** (jawāhír) نر.م. ج. (ج. جواهرات) قيمتي ګانې، کريمه احجار، ګرانې ډبرې.

**جوباټه** (jobāṭá) ښځ.م. دوپټه، څادر، جباټه، جوپټه، پټو، لوپټه.

**جوبړ** (jobáṛ) نر.م. ججوره، د غوا یا غویي د غاړې لاندې پسته غوښه.

**جوبل** (jobál) نر.م. و گ. ژوبل.

**جوبن** (jobán) نر.م. ۱) ځواني، ژنيتوب؛ ۲) ښکلا ښايست؛ ۳) پسرلی، سپرلی.

**جوبه** (jobá) ښځ.م. منډيي، بازار.

**جوپه** (jopá) ښځ.م. ۱) ټولی، ډلــه؛ ۲) کاروان، قافله، بهير؛ ۳) ځل، وار؛ ٤) برخه، حصه.

**جوپه انگړ** (jopaangáṛ) نر.م. کاروان سرای، د قافلې د درېدو، تمبدو او اړولو ځای.

**جوپه جوپه** (jopajopá) ص. نر. ښځ. م. ۱) ډلې ډلې، ټولی ټولی، جوپې جوپې؛ ۲) وار په وار.

**جوپه مشر** (jopamašər) نر.م. د قافلې مشر، د کاروان د سرسړی، د جوپې د سرسړی.

**جوپه وال** (jopawā́l) ص.نر.م. بهيرچي، کارواني، په قافله کې شامل خلک؛ ۲) هغه سړی چې د کچرو او خرو په وسيله د بار وړلو کسب کوي.

**جوت** (jawát) نر.م. ۱) ښکاره، څرگند، ثابت؛ ۲) جفت، جوړه؛ ۲) تيار؛ ۳) روږدی، عادتي؛ ٤) پيوست، جوخت؛ ٥) برابر، کارته اماده.

**جوتپوړ** (jawatpóṛ) ا. ثابته درجه.

**جوتپوهنه** (jawatpohə́na) مثبت علم، طبيعي علم.

**جوتش** (jawtáš) نر.م. نجوم، استرالوجي، استرانومي، د ستورو علم، طالع کتنه.

**جوتک** (jawták) نر.م. جخت، ښنگ په ښنگ، اړخ په اړخ، ډډه په ډډه، نښتی، پيوست.

**جوتکي** (jawtakí) ښځ.م ۱) جوتې لتې، لغتکې، ټوپونه؛ ۲) دوه جوخت ستوري.

**جوتول** (jawatawə́l) مص. مت. ۱) ښکاره کول، څرگندول؛ ۲) تيارول؛ ۲) اېلول، روږدی کول؛ ۳) په ټوپونو راوستل، په لغتو راوستل.

**جوتی** (jawtáy) ص. نر.م. ۱) د يــوې غـويی، په قلبه باندې اموخته غـويی؛ ۲) روږدی، عـادي، بلد، آموخته.

**جوتی** (jutáy) ښځ.م. پنې، کپې، موچنې.

**جوتېدل** (jawatedə́l) مـص. ل. ۱) څـرگندېدل، ثابتېدل؛ ۲) تيارېدل؛ ۲) روږدېدل.

**جوټ**[1] (juṭ) نر.م. ۱) خفه، زهير، غمجن، تنگ؛ ۲) عبث، فضول؛ ۳) ملگری، سيال.

**جوټ**[2] (joṭ) نر.م. ۱) د مېښې يو کلن بچی، جبټ، کټی؛ ۲) چرگوټی، چرگوړی.

**جوټول** (juṭawə́l) مص. مت. ۱) خفه کول، زهيرول ۲) ايسارول، وروسته کول؛ ۳) عبث کول.

**جوټه**[1] (juṭá) ښځ.م. ۱) پس مـانده، پاتې خواړه؛ ۲) ص. نب. ناپاک، خوسا، پليت.

**جوټه**[2] (joṭá) ښځ.م. ۱) د مېښې هغه غــټه بچـی چې لنگه شوې نه وي خو د بلاربېدو لپاره تياره وي؛ ۲) چته پېغله، تندرسته پېغله.

**جوجڼ غاړی** (jujanğā́ṛay) نر.م. هغه وری چې تر زنی لاندې دوه د غوښې غدې ځوړندې وي.

**جوجوره** (jojū́ra) ښځ.م. ۱) جوجوری، ججوره؛ ۲) زغم، حوصله.

**جوخت** (joxt) ص. نر.م.ج. ۱) متصل، ښنگ په ښنگ، اړخ په اړخ، نښتی؛ ۲) ښه ښځ.

**جوختول** (joxtawə́l) مص. مت. جختـول، ښنگ په ښنگ کول.

**جوختوالی** (joxtwā́lay) نر.م. جختوالی، ښنگ په ښنگ والی، نښېدېوالی.

**جود** (jud) نر.م ۱) سخاوت، بخښنه، لـوره، ورکړه؛ ۲) د جارو بوټی، د ربېزې بوټی.

**جودانه** (jawdāná) ښـځ.م. ۱) د اوريښې دانـه؛ ۲) د اوريښې غوندې، د اوريښې هومره.

**جودر** (jawdár) نر.ج. مستک، جمدر، توره دانه، هغه دانه چې په غنمو کې راشنه کېږي.

**جور**⁽¹⁾ (jawr) نر.م. ظلم، ستم، ځور، زور زياتی.

**جور**⁽²⁾ (jawár) ص. نر.م. ج. و گ. ژور.

**جور**⁽³⁾ (jor) نر.م. دم، د وريجو دم.

**جور**⁽⁴⁾ (jur) نر.م. دوه خړرنگي مـرغان دي چې يو يې غټ او د هيلۍ هومره وي، بل يې وړ دی.

**جوراباز** (jurābā́z) نر.م. يو ډول باز دی.

**جوران** (jawrā́n) نـر.م. نـوروزي گل، هغه گل چې تر نورو گلانو مخکې شين کېږي.

**جورس** (jawrás) نر.م. جورسه، يو ډول منې دي چې تر نورو منو مخکې پخېږي.

**جورکه** (joráka) ښځ.م. چورکۍ، يو ډول مرغۍ ده.

**جورمل** (jurmál) ص. نر.م. جورمله، تپ، ډنگـر (ځاروی)، ډنگر او خوار حيوان.

**جورنيز** (jurníz) نر.م. يو ډول مرغۍ ده.

**جوروجفا** (jawrojafā́) ښځ.م. ظلم ستم، زور زياتی، ظلم او ناتار.

**جورۍ** (jurә́y) ښځ.م. ۱) يـو ډول مـرغۍ ده چې جورنيز هم ورته وايي؛ ۲) کتـو، کتوه، خاورينه کتوی؛ ۳) کوزړی؛ ٤) حاشيه، څنډه، غاړه.

**جورېدل** (juredә́l) مص.ل. په وينه کې زهر گډېدل زهر په وينه کې خپرېدل.

**جوړ**⁽¹⁾ (joṛ) ص.نر.م. ۱) روغ، تندرست؛ ۲) تيار، ساز؛ ۳) شايد، گوندې، گنې؛ ٤) برابر، سم؛ ٥) بند، پيوند؛ ٦) نر.م. موافقه، جوړه.

**جوړ**⁽²⁾ (juṛ) نر.م. شور، په کولمو کې د باد اواز.

**جوړاب** (juṛā́b) نـر.م. ښکلې ځـواني، ښـايسته ځواني، ښه ځواني، ښه څېره، ښه کره وره.

**جوړابېدل** (juṛābedә́l) مـص.ل. ښکلی کـېدل، ښايسته کېدل، ښه څېره ايستل.

**جوړانگه** (juṛā́nga) ښځ.م. ۱) پړانگه، رېستاره، چيړه؛ ۲) زنگوله، هغه يخی چې له بامه څخه په ناوه کې راځړېږي.

**جوړپه‌جوړ** (joṛpәjóṛ) ق. بند په بند.

**جوړتازه** (joṛtāzá) ښځ.م. ستړي مه شي، بړه گړه.

**جوړتوب** (joṛtób) نر.م. ۱) جوړوالی، جوړتيا؛ ۲) د دوو کسانو ترمنځ جوړه يا موافقه.

**جوړجاړ** (joṛjā́ṛ) نر.م.ج. ۱) جوړ جاړه، جوړجاړی سوله؛ ۲) ص. نر.م. روغ رمټ؛ ۳) تول.

**جوړجوړی** (juṛjuṛáy) ښځ.م. جـرجرې، د اوبو شرشره، د اوبو د توېدلو اواز.

**جوړخی** (juṛxә́y) ښـځ.م. ۱) يو ډول بوټی دی؛ ۲) درغن، شـازه، هـغـه اوار کانی چې دوايي ورباندې ميده کوي.

**جوړښت** (joṛә́st) نـر.م. ۱) جـوړتيا، روغوالی؛ ۲) سـمون، بـرابري؛ ۳) سـاختمـان، بناوټ؛ ٤) روغه، فيصله، سوله.

**جوړکانی** (joṛkā́ṇay) نـر.م. تيـږه، نرخ، دود، د روغې جوړې لپاره قومي حد او ناغه ټاکل.

**جوړموټ** (joṛmóṭ) ص. نـر.م. روغ رمـټ، روغ رموټ، جگ جوړ، ښېخي جوړ.

**جوړنگ** (juṛáng) نر.م. بيـاره، چړغ، جلغ، ماندړه، زيلانگه، تونگ؛ دختکو، بادرنگو او هندوانو اوږده اوږده جرنگونه.

**جوړنه** (joṛә́na) ښځ.م. روغه، جوړه، سوله.

**جوړوالی** (joṛwā́lay) نر.م. روغـوالی، صحت، تندرستي، روغ رمټ والی.

**جوړوب** (juṛúb) نـر.م. غـړوپ، شـړوپ، په اوبو کې د يو شي د لوېدو اواز.

**جوړوبی** (juṛobáy) نر.م. ځړوبی، جړووب، زاوه، له لوړ ځای نه د اوبو راتوېدل.

جورول (joṛawə́l) مص.مت. ۱) سازول، روغول؛ ۲) برابرول، سمول؛ ۳) رغښت ورکول، تندرستول؛ ٤) ابادول.

جوړه(۱) (joṛá) ښځ.م. ۱) جفت، قلبه، د ییوي غوایي؛ ۲) جامه، د ناوي جامې؛ ۳) روغه، سوله، پخلاکېدنه؛ ۲) د جوړ ښځينه شکل.

جوړه جاړه (joṛajāṛá) ښځ.م. و ګ. جوړجاړ.

جوړی(۱) (joṛə́y) ښځ.م. ۱) جوړه، دوه ملګري؛ ۲) ییوې لپاره غاړه شوي غوایان.

جوړی(۲) (júṛəy) ښځ.م. ۱) د ماشوم څوخی؛ ۲) د سنتۍ د مخه د ماشوم د تذکير آلې پر سر پسته غوښه؛ ۳) څروبی، جروبی، زاوه.

جوړې (joṛé) اد. شايد، ګوندې، ګني، جوړ.

جوړېدل(۱) (joṛedə́l) مص.ل ۱) تيارېدل، رغېدل؛ ۲) پخلا کېدل، موافقې ته سره رسېدل؛ ۳) مينېدل؛ ٤) سينګارېدل؛ ٥) برابرېدل؛ ٦) ترتيبېدل، تنظيمېدل؛ ۷) تندرست کېدل؛ ۸) درېدل، ولاړېدل.

جوړېدل(۲) (juṛedə́l) مص.مت. جړېدل، جيرېدل، په خبته کې اواز پيدا کېدل.

جوړېوال (joṛewā́l) نر.م. ۱) د ییوې خاوند، د قلبې خاوند؛ ۲) کروندګر، دهقان، ښکوروار، څمکه‌لرونکی.

جوز (jawz) نر.م. ۱) غوز، اکوړ، متک، چارمغز؛ ۲) د غوز ونه.

جوزبويه (jawzboyá) ښځ.مم. کارې زړی، جايفل، پوډول دوا ده، جوزه.

جوزګری (juzgarə́y) ښځ.م. جيغه، د اوښ مصنوعي تاج، د اوښ د ترسيري جوغه.

جوزګيره (jawzgirá) ښځ.م. د تسپو څونډی.

جوزه (jawzá) ښځ.م. جوزبويه، جايفل.

جوزي مردکه (jawzimardáka) ښځ.م. د هغې تيږې مردکې چې شنه او سره رګونه په کې وي، د ډبرې سانقه، هغه مردکې چې چارمغز او غوزان ورباندې ويشتل کېږي.

جوس (jawás) نر.م. ۱) غولی، انګړ، انګڼ؛ ۲) کلي ته نږدې پرته څمکه.

جوسر (jawsár) نر.م. ۱) ورځرمه، جوخت، ورسره ښخ، نښتی؛ ۲) له سره تېرول.

جوسرول (jawsarawə́l) مص. مت. ۱) ورځرمه کول، جوختول؛ ۲) له سره تېرول.

جوسرېدل (jawsaredə́l) مص.ل. څېرمه کېدل، پيوندېدل، جوختېدل، نښلېدل.

جوسه(۱) (jusá) ښځ.م. ۱) څېره، بڼه، مخ، جثه، قواره، شکل؛ ۲) جسم، بدن، وجود.

جوسه(۲) (jowsá) ښځ.م. کوړ.

جوسه(۳) (jawsá) ښځ.م. دبوالي الماری.

جوش (još) نر.م. ۱) يش، ايشېدنه، خوټېدنه؛ ۲) ولوله، جذبه؛ ۳) ګرمي؛ ٤) شهوت، مستي ٥) سوخت، قهر، غوسه؛ ٦) لېونتوب.

جوش خروش (jošxorós̆) نر.م. ۱) مستي؛ ۲) غوسه، قهر؛ ۳) جذبه، ولوله؛ ٤) تودښت؛ ٥) تر و تازه؛ ٦) پرمختګ.

جوشناک (jošnā́k) ص.نر.م.ج. احساساتي، جذباتي، له جوشه ډک، له احساساتو ډک.

جوشول (jošawə́l) مص.مت. ايشول، خوټول.

جوشي (joší) ص. نب. احساساتي، جذباتي،

جوغ (juğ) نر.م. جغ. زغ، څغ.

جوغاړکی (juğāṛkáy) نر.م. ۱) کوغالی، جزغالی ۲) د قاب تل، د پشقاب تل.

جوغدي (juğdí) ص. نب. ۱) عادتي، روږدی؛ ۲) سوی، وريت، لولپه؛ ۳) ترسلطې لاندې.

**جوغری** (jug̃aráy) نر.م. وروکی سوری، نری سوری، ورکوټی سوری.

**جوغړ** (jug̃aṛ) نر.م. جغړ، شکېدلی کټ.

**جوغړی** (jug̃aṛáy) نر.م. ژوره ځمکه، کنده، دوغل ژغوری، جغوری.

**جوغه** (jug̃á) ښځ.م. تاج، جیغه، جغه، چوغه.

**جوغېدل** (jug̃edә́l) مص.ل. ۱) بوختېدل، لګیا کېدل؛ ۲) متـه کېدل، خرې کېدل.

**جوک** (juk) نر.م. ۱) وزن، تلل، تول؛ ۲) د اوښ د خې کېدو ځای، د اوښ د پربوتو ځای.

**جوک** (jawák) نر.م ۱) یو ډول مرغۍ ده؛ ۲) زخه، د ټوپک زخه.

**جوکل** (jukә́l) مص. مت. تلل، وزن کول.

**جوکلی** (jukә́lay) مف. نر.م. تللی، وزن کړی.

**جوکمار** (jukmā́r) فا.نر.م. د ګانۍ اور والا، هغه څوک چې په ګانۍ پسې اور بلوي.

**جوکه** (joká) ښځ.م. ژوره، جوره، روی، یو ډول چنجی دی د حیواناتو په ځان نښلي.

**جوکېدل** (jukedә́l) مص. ل. وزن کېدل، تلل کېدل.

**جوګ** (jog) نر.م. ۱) څوز، ازغن بوټی، ازغی؛ ۲) کوډې، جادو؛ ۳) نر.م. ج. مو. د نیمې شپې له راګونو څخه یو راګ دی.

**جوګړ** (jogáṛ) نر.م. جونګړه، جونګړی، جوګړه، خپر، سوله، ساله.

**جوګه** (jogá) ص. نب. لایق، موزون، ور.

**جوګي** (jogí) ص. نر.م. (ج. جوګیان) جادوګر، کوډګر.

**جوګیا** (jogiyā́) نر.م. مو. له سهارنیو راګونو څخه یو تراژیدیک راګ دی.

**جوګیر** (jawgír) نر.م. کنډوه، ارغېړلی، اغېړ، په هغه ځا چې خواړه بد لګېدلي وي.

**جولا** (jolā́) ص.نر.م ۱) اوبدونکی، ټوکر اوبدونکی، پاولی؛ ۲) ناپوه؛ ۳) غنې، غنه، جولاګی.

**جولاجال** (jolājā́l) نر.م. د غنې جال.

**جولاګري** (jolāgarí) ښځ.م. جولاتوب، جولایي، د جولا کسب.

**جولاګک** (jolāgák) نر.م. غنې، تارکښ.

**جولان** (jawlā́n) نر.م. د آس ځغل، د آس منډه.

**جوله**[1] (jawlá) ښځ.م. څېره، شکل، بڼه، قواره.

**جوله**[2] (jolá) ښځ.م. ۱) ځل، جل، د تندې ناروغي ۲) ګوزڼ، ګوزن، فلج؛ ۳) سپېرکی.

**جوله ونج** (jawlawánj) ا. شکل بدلون، شکلي بدلون.

**جولی** (joláy) ښځ.م. ۱) ځولۍ، لمنه؛ ۲) طبراق، فوځي طبراق، یو ډول ځانګړی کڅوړه ده.

**جولیز** (jolíz) ص. شکلي، د شکل اړوند، صوري، ظاهري.

**جوم** (jum) نر.م. چم، کرچ، هغه ځته چې په یو ځل په ببلچه یا یوم کې را واخیستل شي.

**جومبړ** (jumbáṛ) نر.م. ۱) هغه ځا چې ارتې او اوږدې جامې اغوستې وي؛ ۲) هغه غویی چې تر مرۍ لاندې غرمن یې ځوړنده وي.

**جومپک** (jumpák) ص.نر.م. زومبک، تل، ګڼ، غومپک، غومبک.

**جومرا** (jumrā́) نر.م. مو. د ۱٤ ماترو تال.

**جومیا** (jumyā́) ښځ.م. و.ګ. جمیا.

**جونپوري** (junpurí) نر.م. مو. له اساوري ټاټ نه، راجلا شوی راګ دی چې کادو سمپورن هم بلل کېږي

**جونډی** (junḍáy) نر.م. وټی، ځونډی، د ګل ځونډی.

**جونګ**[1] (jong) نر.م. ۱) جونګی، د اوښ دوه کلن بچی؛ ۲) دیادښت کتابچه، د یادداشت کتاب.

**جونګ**(۲) (jung) نر.م. منتخبات، مجموعه.

**جونګړا** (jungṛā́) ص. نب. ناراسته، کاهل، لټ.

**جونګړه** (jongáṛa) ښځ.م. جونګنه، ځپړی، کوډلی، چوپال، وړه او غریبانه کورګی.

**جونګړی** (jongaṛáy) ښځ.م. وړه ځپړه، کمکی کوډله، کوچنی ساله، وړه چوپړی.

**جونګوڼا** (jungoṇā́) ص. نر.م. ۱) بې تهذیبه، بې کولتوره، بې فرهنګه؛ ۲) بدخویه، بې ادبه.

**جونګه**(۱) (jóṅga) ښځ.م. جونګی، د اوښ دوه کلنه بچی، د اوښ ښځینه بچی.

**جونګه**(۲) (jungá) ښځ.م. چنګه، چونګی، په سودا کې زیات ورکړ شوی شی.

**جونه** (jū́na) ښځ.ج. نجونه، جنکیانې، جنکی.

**جووړ** (jawā́ṛ) نر.م. ډنډ، تالاو، حوض، جوو.

**جووه** (jowā́) ښځ.م. جبوه، جویه، دیچه، ډوچه، ډیچه، دوپچه، دوچه، لښتی.

**جوهر** (jawhár) نر.م. ۱) دګوهر اوو ښتی شکل؛ ۲) د یو شي آر او لنډیز، اصالت؛ ۳) فل. سب ستنس، هغه څه چې قایم بالذات وي؛ ۴) ښېګڼه، صفت، خاصیت، کمال؛ ۵) قیمتي کاڼي، کریمه احجار.

**جوهردار** (jawhardā́r) ص. نر.م.ج. ۱) جوهر لرونکی؛ ۲) ځلېدونکی؛ ۳) اصیل، جوهر لرونکی؛ ٤) تجربه کار، فن کار.

**جوهري** (jawharí) ص. نب ۱) جوهر خرڅوونکی، د مرغلرو سوداګر؛ ۲) مهم، غوره، اصل؛ ۳) پسولل شوی، په جوهرو جړاو شوی.

**جوهړه** (juháṛa) ښځ.م. ګونځه، ګونجه، تاو، ناهموار، کوریته.

**جوي** (jawí) ص. نب. د هوا، د جو، د اتموسفیر، پر هوا مربوط، مرالوجیکي.

**جویړ** (jwiṛ) نر.م. د ولاړو او ګنده اوبو ډنډ.

**جویل** (joyál) مص. مت. و.ګ. ژوول.

**جه** (ja) ښځ.م. ۱) اتفاق، موافقت، هم نظر کېده؛ ۲) لج، ځېل، اړی کونه، د خبرې نه منښه.

**جهاد** (jahā́d) نر.م. ۱) جهد، کوښښ کونه؛ ۲) د دین او حق په لاره کې جنګ کونه، غزا.

**جهاز** (jahā́z) نر.م. ۱) الوتکه؛ ۲) بحري بېړۍ؛ ۳) د کور سامان، د کور تال ځکال؛ ٤) دستګاه؛ ۲) د بدن هغه غړي چې ټاکلې وظیفه اجرا کوي لکه د هاضمې جهاز.

**جهازوان** (jahāzwā́n) نر.م ۱) جازوالا، پیلوټ؛ ۲) کښتیوان، بېړۍ چلوونکی.

**جهازي** (jahāzí) ص. نب. ۱) جهازوان، پیلوټ؛ ۲) ښځ.م. جازي، دیو ډول تومانچې نوم.

**جهالت** (jahālát) نر.م. ۱) ناپوهي، کم عقلي؛ ۲) سرزوري، سرتمبګي، ځېل.

**جهان** (jahā́n) نر.م. ۱) نړۍ، دنیا؛ ۲) ډېر خلک، عالم.

**جهان بیني** (jahānbiní) ښځ.م. و.ګ. نړۍ لید.

**جهانداري** (jahāndārí) ښځ.م. دنیا داري، د دنیا راشه درشه، تولنیزه راشه درشه.

**جهان دیده** (jahāndidá) ص. نب. ۱) تجربه کار، په ژوند پوه؛ ۲) جهان ګشته.

**جهانساز** (jahānsā́z) ص. نړۍ سازوونکی، نړۍ جوړوونکی.

**جهانسوز** (jahānsóz) ص. نړۍ سوځوونکی، نړۍ سیځونکی.

**جهانګیر** (jahāngír) ص.نر.م ۱) نړۍ نیوونکی ۲) د مغولي سلسلې د یوه پاچا (نورالدین سلیم) لقب.

**جهاني** (jahāní) ص. نر.م. نړۍ وال، د نړۍ.

**جهت** (jəhát) نر.م. ۱) خوا، پلو، لوري، اړخ، سمت؛ ۲) سبب، علت، له دې امله.

**جه جه** (jajá) ښځ.م. د ښاروېو د شړلو اواز.

**جهد** (jahd) نر.م. ۱) کوښښ، زيار، هڅه، خواري؛ ۲) وس، طاقت، قدرت، توان.

**جهر** (jahr) ص. نر.م ۱) په لوړ اواز؛ ۲) په ښکاره، په څرګنده؛ ۳) نر.م. جار، ډنډوره.

**جهکېدل** (jhkedə́l) مص.ل. پر څوکۍ، سنګر، مورچه او مورچل کې پټ کېناستل.

**جهل** (jahl) نر.م. ناپوهي، ناداني، کم عقلي.

**جهنم** (jahanə́m) نر.م. دوزخ، د ګناهکارو ځای.

**جهيز** (jahíz) نر.م. جيز، کردار، هغه کالي او سامان چې ناوې يې د پلار له کوره له ځانه سره وړي.

**جهيل** (jahíl) نر.م. جغ. ډنډ، ولاړې اوبه، يوه توټه اوبه چې شا وخوا يې وچه وي.

**جی** (jay) نر.م. ۱) و.ګ. ژی؛ ۲) ځای؛ ۳) برې ګټه.

**جۍ** (jəy) ښځ.م. ژۍ، زی، څنده، غاړه.

**جې** (je) ښځ.م. د اوبو د چوکولو او ځې کولو اواز.

**جيالوجسټ** (jyālojíst) نر.م. د جيالوجي پوه.

**جيالوجي** (jyālojí) ښځ.م. ځمکه پېژندنه، د ځمکې پېژندنې پوهنه.

**جېب** (jeb) نر.م. جب، په کرتي، پتلون، کميس کې د کاغذ، قلم، روپۍ ايښودلو ځای.

**جيباټه** (jibāṭá) ښځ.م. څادر، جيبټه، دوپټه.

**جېبي** (jebí) ص. نب. د جېب، په جېب پورې تړلی.

**جيټی** (jiṭáy) نر.م. له تيټې يا خاورې نه جوړ مردکی چې کوچنيان لوبې ورباندې کوي.

**جيټ** (jiṭ) نر.م. د اوښانو د خوراک يو ډول بوټی دی.

**جېټ** (jeṭ) ښځ.م. ۱) د خلو او بوټو ځای، د څپيا کو ځای چې نغري ته نېږدې وي؛ ۲) جېشټ، د هندي کال دريمه مياشت؛ ۳) و.ګ. جټ؛ ۴) د موټر په کاربېټر کې د يوې پرزې نوم؛ ۵) سنها.

**جيټکه** (jiṭká) ښځ.م. جټکه، ډکه، ټېله، ټېندک.

**جيجرۍ** (jijrə́y) ښځ.م. ۱) خاورين منګ، خاورينه لاسته لرونکی باډوله؛ ۲) داوبو ښېلو خاورينه لوټه، توږۍ؛ ۳) لوښۍ، ګاودوشی.

**جيجی** (jijáy) نر.م. د يوه مرغه نوم دی.

**جيجيونتي** (jayjaywantí) نر.م. مو. د کماچ ټاټ يو راګ دی، رکهب يې بادي دی.

**جېر** (jer) نرم. جر، هغه لوړ اواز دی چې د اتڼ په وخت کې له خولې ايستل کېږي.

**جيرول** (jirawə́l) مص. مت. څيرول، کتل، متوجه کول.

**جيره** (jirá) ښځ.م. ۱) څيره، اندازه، تر لاس لاندې معين ډوډی؛ ۲) محدوديت کنټرول.

**جيرۍ** (jirə́y) ښځ.م. کوزړۍ، کوزلۍ، د خاورو ګډوۍ، د خاورو ګډوه.

**جيزوبيز** (jizobíz) نر.م. جز پز، عادي او ناڅيز ګولۍ (کتنغ، لنډبل).

**جيږ** (již) ص. نر.م. ۱) زيږ، څيږ، ببر؛ ۲) غيرتي.

**جيزمه** (jiẓmá) ښځ.م. جيزمه، څيزمه، جېږمه، د ښوغالۍ، د سترګو هغه برخه چې باڼوګان ورباندې شنه کېږي.

**جېسل** (jesə́l) مص. مت. تنګول، کړول، ځورول.

**جېسلی** (jesə́lay) مف. نر.م. ځورېدلی، ځورول شوی، تنګ کړی، کړولی.

**جيسي** (jisí) نر.م. مسي کنډول، جستي کنډول.

**جيشکيشته** (jiškištá) ښځ.م. د مرو جستو کوشته، له جستو څخه جوړه کوشته..

**جيغه** (jiǧá) ښځ.م. جوغه، کرکرۍ، قرقره، تاج.

**جېل** (jel) نر.م. ۱) جهل، ناداني؛ ۲) ځهل، ضد؛ ۳) بنديخانه، محبس، جېلخانه، زندان.

**جیلغ** (jiláǧ) نـر.م. جـړنګ، تـونګ، زنګلانګه (د هندوانو او...)؛ ۲) کـتار، قطـار؛ ۳) جالغ، د اس ترزین لاندې لمـڅی؛ ٤) چـڼل، د اکـوړو وړی، د اکوړ ګنګوری.

**جیم** (jim) نـر.م. ۱) د «ج» تـوري غـږ او تلفـظ؛ ۲) دیوې کلکې تو کر نوم؛ ۳) دلیوانو او ګیدړو کړکیکی او تلک.

**جینکۍ** (jinakə́y) ښځ.م. و ګ. جلۍ.

**جینجړ** (jinjaṛ) نـر.م. ۱) پاپـړه، شـاتره، یو ډول طبي بوټی دی؛ ۲) د خاکشیرو بوټی.

**جینجړک** (jinjṛək) نر.م. ناري، ښانکی، هغـې ډوډۍ ته وایي چې په ناوې پسې د پلار لـه کاله څخه د ناوې خسرکره لیږله کېږي.

**جینجړکه** (jinjaṛə́ka) ښځ.م. ډنداره مـوچۍ، توره مچۍ، توره غومبسه، ډمبره.

**جینجو** (jinjó) ص.نر.م. مجذوب، بې پروا، بېحاله

**جینکت** (jinakát) نر.م. پرهـار پـانه، بارتنـګ، ګـزک پانه، یـو ډول بوټی دی چې پانې یې په پرهار باندې تړي.

**جینګ** (jing) ص.نـر.م.ج. چنګ، واز، ببـرته، جینګ خولی.

**جینګا** (jingā́) ص.نب ۱) بې فکره؛ ۲) بې خولې.

**جینګ جینګ** (jingjíng) نـر.م. ۱) چاپلوسي، غوړه مالي؛ ۲) رینګ رینګ.

**جینګ خولی** (jingxū́lay) ص.نـر.م. پیـخ خولی، جینګ داړی.

**جینګ داړی** (jingdāṛáy) ص.نر.م. ۱) چنګ خولی، هغه څوک چې داړې یې چینګې راوتلې وي؛ ۲) نر.م. د کوچنیانو لوبه ده.

**جینګړ** (jingə́ṛ) ص.نر.م. ۱) کمزوری، بې خونده؛ ۲) بې زړه، بې همته.

**جینګول** (jingawə́l) مص.مت. چینګول، ویتول، خوله وازول، خوله ببرته کول.

**جینوتاړی** (jinotāṛáy) ص.نـر.م. جینوتی، ښځنی، ښځونک، ښځنوکی، زنچه ملو.

**جینوټې** (jinoṭé) ښځ.م. وړه نجلۍ، وړه جنۍ، وړه جلکۍ.

**جینۍ** (jináy) ښځ.م. نجلۍ، جلکۍ، نجلکۍ.

**جیو** (jiw) نر.م. ۱) قـربان، جار، درنه صدقه شم؛ ۲) بلې، هو، اوکې، همداسې ده، ښه.

**جیوجان** (jiwjā́n) نـر.م. ۱) جـوجـار؛ ۲) راشه درشه، زار او قربان.

**جیو جیو** (jiwjíw) نر.م. ۱) زار قربان، جارجار؛ ۲) چاپلوسي، تیټ و پاس، غوړه مالي.

# چ

**چ** (če) ښځ.م. چې، د پښتو الفبې نهم توری دی.

**چا** (ča) ض. شخصي، بسیط، ګونګ او استفهامي ضمیر دی.

**چاباره** (čābāra) ص.نب. ۱) چالاکه، زړوره او کاریګره ښځه؛ ۲) پوهه ښځه، ښه مېرمن.

**چابړی** (čābṛáy) ښځ.م ۱) چاپړی، د تلې او ترازو یوه پله؛ ۲) وړه تبوکری، وړوکې شکری، کوچنۍ شکرۍ.

**چابړي والا** (čābṛiwālā́) نر.م هغه څوک چې تله په لاس ګرځي او شیان خرڅوي.

**چابک** (čābák) ص.نر.م. ۱) چالاک، تېز، چست، ګړندی؛ ۲) متروکه، تراټ، قمچینه.

**چابکتوب** (čābaktób) نر.م. چابکتیا، چابکي، ګړندیتوب، چابکوالی، تېزي.

**چابکول** (čābakawə́l) مص.مت. ګړندي کول، متي کول، تېزول، اوچتول.

**چابکی** (čābukə́y) ښځ.م. ګړندۍ، مادکینا، یو ډول نسواري رنګه خزنده ده.

**چابکي** (čābəkí) ښځ.م. بېړه، تندي، ګړندیتوب، شتاب، چالاکي، تلوار، روبه، تېزي.

**چابکېدل** (čābəkedə́l) مص.ل. ګړندي کېدل، چالاکه کېدل، تېزېدل، متي کېدل.

**چابي** (čābí) ښځ.م. کونجي، کیلي.

**چاپ** (čāp) نر.م. طبع، ټاپ، د ځانګړو ماشینونو، وسیله د تصویرونو او لیکنو د انځورولو فن.

**چاپانه** (čāpā́na) ښځ.م. شوکه، چور، چپاو.

**چاپ پازوال** (čāppāzwā́l) ص. د چاپ چارې، د چاپ مسؤل.

**چاپت** (čāpát) نر.م. ۱) په پور سودا؛ ۲) یادښت، چوب خط.

**چاپت کول** (čāpatkawə́l) مص.مت. له دوکاندار څخه په پور سودا اخیستل.

**چاپځی** (čāpʒáy) ا. چاپخونه، چاپخانه.

**چاپخانه** (čāpxāná) ښځ.م. چاپځی، هغه ځای چې دچاپ چارې پکې تر سره کېږي.

**چاپړاخ** (čāpṛā́x) ص. نـر.م. ۱) ببـرته، واز، خلاص؛ ۲) پلن، پراخ، ارت.

**چاپشمېر** (čāpšmér) ا. د چاپ شمېر، د چاپ تیراژ او تعداد.

**چاپکه** (čāpə́ka) ښځ.م. څپیاکه، سوپه، تپی.

**چاپګر** (čāpgár) ص. چاپوونکی، چاپ والا.

**چاپلوس** (čāpalós) ص.نر.م. غوړه مال، متملق، خوشامندګر، بوټ پاک.

**چاپ والا** (čāpwālā́) نر.م. ۱) طبع کوونکی؛ ۲) تاپه لګوونکی؛ ۳) نښه کوونکی.

**چاپول** (čāpawə́l) مص.مت ۱) طبع کول، خپرول؛ ۲) تاپه کول، مُهر کول؛ ۳) نښه کول.

**چاپه** (čāpá) ښځ.م. ۱) چاپ، خاپ؛ ۲) غټ مهر؛ ۳) تاپه، نقش؛ ٤) څپک، دځلورو ګوتو اندازه ۵) دغنو پولۍ، دازغیو دلۍ؛ ٦) ناڅاپي حمله.

**چاپي** (čāpí) ص. نب. ۱) چاپ شوی، طبع شوی؛ ۲) نښه شوی؛ ۳) د چاپ؛ ٤) ښځ.م. چاپي کونه، لاسونو سره د وجود د سترو غړو منبل او کښېکښل یا کښمنډنه.

**چاپېدار** (čāpedā́r) ص.نر.م. چاپ او نښه لرونکی.

**چاپېدل** (čāpedə́l) مص.ل. طبع کېدل، چاپ کېدل، خپرېدل، په ماشین چاپ کېدل.

**چاپېر** (čāpér) ص.نر.م. ۱) تاو راتاو، ګرداګرد، ګردي ګوټی؛ ۲) اخته، لګیا؛ ۳) نر.م. شا وخوا.

**چاپېرچل** (čāperčál) نر.م ۱) ګردښت، ګرځېدنه؛ ۲) پرله پسې راتاوېدنه او را ګرځېدنه.

**چاپېرسیند** (čāpersínd) نـر.م. لوی سمندر، اقیانوس، کاري دریاب، کاړي دریاب.

**چاپېرول** (čāperawə́l) مص. مت. ۱) چاپېر کول، راتاوول؛ ۲) محاصره کول، ګېرول؛ ۳) په غېږ کې نیول.

**چاپېرې** (čāpéray) ص.نر.م. ۱) پرکاره، زیات کارکوونکی؛ ۲) مصروف، لګیا، بوخت.

**چاپېریال** (čāperyā́l) نر.م. محیط، شاوخوا، ماحول، چاراطراف.

**چاپېریال پوه** (čāperyālpóh) ص. د چاپېریال څانګوال، ژویالپوه.

**چاپېرېدل** (čāperedə́l) مص. ل. ۱) شاوخوا څنې ګرځېدل، شا وخوا تـرې تاوېدل؛ ۲) لګیا کېدل، اخته کېدل بوختېدل.

**چاپي کول** (čāpikawə́l) مص. مت. کښېکښل، منبل، کوفت کښل، کښمنډل.

**چاټ** (čāṭ) نـر.م. ۱) د دواړو ورنونو منځ؛ ۲) تـروه مربا، دمېوو څخه جوړه شوې تروسکینه غوندې ملغوبه.

**چاټو** (čāṭó) ص.نـر.م. چټ، مست، خوش طبع، څوک چې خپل وخت په خوښۍ تېروي.

**چاټۍ** (čāṭáy) ښځ.م. متۍ، ماتۍ، مټ، هغه لوی خاورین لوښی چې اوبه په کې اچول کېږي.

**چاجوش** (čājóš) نر.م. چایجوش.

**چاچا** (čāčā́) ښځ.م. ۱) هـن. چـاچـاچا، یو ډول هسپانوي نځـا ده؛ ۲) تره، کاکا؛ ۳) مشر سړي ته د درناوي لقب.

**چاچوغاړه** (čāčūgā́ra) ښځ.م. چیچو غاړه، کوچنی په غاړه او اوږه باندې د ناست حالت.

**چاچۍ** (čāčáy) ښځ.م. ۱) د تره ښځه، تنداره، د کاکا ښځه؛ ۲) دلاس چپېر، پنجه او خپره؛ ۳) ووړوکی (کوچنی) لاس.

**چاچي** (čāčí) ښځ.م. د تره ښځه، تنداره، تندیاره.

**چاخ** (čāx) ص. نر.م. تېز، توند، بېړندی.

**چاخول** (čāxawə́l) مص. مت. تېزول، چالاکه کول، منې کول، اوچتول، چابکول، تېزول.

**چاخېدل** (čāxedə́l) مص. ل. تېزېدل، چالاکه کېدل، اوچتېدل، وندې کېدل، تندېدل.

**چادي** (čādí) ص. نر.م. (ج. چاديان) ساده، بودلی، کم عقل، ناپه، احمق، سوډر.

**چاديتوب** (čāditób) نر.م. ساده توب، ناپوه، کم عقلي.

**چادي چکمار** (čādičakmā́r) ص. نر.م. ډېر ساده، ډېر کم عقل، لوده.

**چاډي** (čāḍí) ښځ.م. اړيکې، لنگتې، پښه اړمونه، د غېږې نيولو په وخت کې د مقابل لوري تر پښه خپله پښه راتاوول.

**چار** (čār) ښځ.م. ۱) کار، پېشه، مشغولتيا، کړه، عمل؛ ۲) تجويز، علاج، چاره.

**چاراندام** (čārandā́m) نر.م. ۱) څلور اندامونه؛ ۲) اودس، له استنجا پرته د نورو غړو مينځل.

**چاربيته** (čārbáyta) ښځ.م. يو مشهور شعر دی چې کيسې، داستانونه او... په کې بيانېږي.

**چارپای** (čārpā́y) نر.م. چارپا، څلور بولی، څلور پښی، د څلورو پښو حيوان.

**چارپايي** (čārpāyí) ښځ.م. کټ، چپرکټ.

**چارپېر** (čārpér) ص. نر.م. ج. و گ. چاپېر.

**چارپېره** (čārpéra) ښځ.م. ۱) د شپې نوکري؛ ۲) په عسکري کې د شپې نوکرېوال.

**چارتاره** (čārtā́ra) نر.م. مو. چارتار، څلورتار، د افغاني فولکلوريکې موسيقۍ يوه آله ده.

**چارتراش** (čārtarā́š) نر.م. تمبه، دگی، هغه لرگی چې څلور اوار او منظم اړخونه ولري.

**چارټ** (čārṭ) نر.م. نقشه، نخچه، خريطه، جدول.

**چارج** (čārj) نر.م. ۱) بر. شارژ، ډکول، د بېټرۍ قوه؛ ۲) توپک ډکول؛ ۳) منصب، مقام؛ ٤) امر ورکونه؛ ٥) قبضه، حوالکی؛ ٦) ماليه، قيمت ۷) تور، اتهام، الزام.

**چارجول** (čārjawə́l) مص. مت. ۱) ډکول، د برېښنا په ذريعه نوی قوت ورکول؛ ۲) امر ورکول ۳) حمله کول، لمسول؛ ٤) قبضه کول؛ ٥) الزام لگول؛ ٦) ماليه لگول.

**چارچاپېر** (čārčāpér) ص. نر.م. ج. ۱) چاپېر، بوخت؛ ۲) شا وخوا؛ ۳) نر.م. محيط.

**چارچلند** (čārčalánd) نر.م ۱) تگ، حرکت، يون؛ ۲) گذاره، رويه، روش، کړه وړه، چال چلند.

**چارچوب** (čārčób) نر.م. ۱) چوکاټ؛ ۲) محدوده، ټاکلي شوي اصول او شرايط.

**چارچوبی** (čārčobə́y) ښځ.م. و گ. چرچوبی.

**چارځی** (čārjáy) نر.م. و گ. کارخانه.

**چارخانه** (čārxāná) ښځ.م. ۱) هغه توکر چې مربع ډوله کرښې ولري؛ ۲) هغه کوټې چې د چلم سکاره، تنباکو او نور شيان په کې اچوي.

**چارخول** (čārxól) نر.م. ۱) چرخل، چارخولک، چارغول، کرکره، چرگ خول يا تاج؛ ۲) د پټکي شمله، د لونگۍ شمله.

**چاردانگ** (čārdā́ng) نر.م. درسته نړۍ، توله جهان، څلور دانگه دنيا، توله نړۍ.

**چاردانگي** (čārdāngí) نر.م. له نړيوالو درستيلو برنگي

**چارديوالي** (čārdiwālí) ښځ.م. د کور احاطه.

**چاړی** (čāṛáy) نر.م. يو ډول توکری ده.

**چارسو** (čārsū́) نر.م. څلور لارې، چارراهي.

**چارښاخه** (čārṣāxá) ښځ.م. څلور غاښی، سکو، ښاخې، د درمند بادولو لرگينه آله.

**چارغولک** (čārğolák) نر.م. و گ. چارخول.

**چارک** (čārák) نر.م. څلور پاوه، څلورمه برخه، ربع

**چارکی** (čārakáy) نر.م. یو چارک (کانی).

**چارگر** (čārgár) فا. نر.م. کارکوونکی، کارگر.

**چارگل** (čārgwál) نر.م. تیک، د ښځو هغه پسول چې په پزه کېږي.

**چارگلی** (čārgwaláy) نر.م. تورپی گل، ترخی، یو ډول بوټی دی چې ژېړ گلان کوي.

**چارگنده** (čārgandá) ښځ.م. چارند، چاری، د خیمې چارچاپېره کېندل شوی ځای.

**چارگی** (čārgáy) نر.م. یو ډول بوټی دی.

**چارلنډی** (čārlandáy) ښځ.ج. ملنډې، ښنډی، ریشخند، پسیخندل، پیشاړې.

**چارلیار** (čārlyā́r) نر.م. کارروزگار، چاره، کار.

**چارمغز** (čārmáğz) نر.م. اکوړ، متک، غوزک.

**چارمن** (čārmán) ا. کارمند، کارندوی (فعال).

**چارمېخ** (čārméx) نر.م. ۱) د ښاروېو یو ډول ناروغي ده؛ ۲) ترخولې ډک؛ ۳) هغه څوک چې په څلور اندامه او په څلور مېخو (موږي) تړل شوی وي.

**چارناچار** (čārnāčā́r) ق. ارومرو، خامخا، د مجبوریت له مخې، په ناکامۍ، مجبوراً.

**چارند** (čāránd) نر.م. و.گ. چارگنده.

**چارندوکی** (čārandū́kay) ص.نر.م. زیارکښ، کاریگر، چارو، کوششي.

**چارنوم** (čārnū́m) ا. چارڅرگندوونکی نوم، لکه ختکر، باغوان، چمیار.

**چارنی** (čārnáy) نر.م. کسبگر، کسبه.

**چارواکی** (čārwākáy) ا. چارواک، چارواکمن، مقام.

**چاروال** (čārwā́l) ا. کارنده، کاروال، کارمن.

**چاروالي** (čārwālí) کارندویي، سرگرمي، فعالیت.

**چاروغه** (čāroğá) ښځ.م. د اومې څرمنې یو ډول پڼې چې مخ یې له لمڅې څخه جوړ شوی وي.

**چاره** (čārá) ښځ.م. ۱) کار، کړه، کسب، پېشه؛ ۲) وسیله، درک؛ ۲) دوا، علاج؛ ۳) تدبیر.

**چاره گر** (čāragár) ص.نر.م. ۱) کومکي، مرستیال ۲) علاج کوونکی، چاره ساز.

**چارې** (čāráy) ښځ.م ۱) بېلچه، کرۍ؛ ۲) چارگنده چارنده؛ ۳) د اوړې هډوکی؛ ٤) د کوچنیانو د لوبو کانی.

**چاري** (čārí) ښځ.م. ۱) نجه، ینگه؛ ۲) څلور غابښي پسه، دوه کلن پسه.

**چاریار** (čāryā́r) نر.م. د آنحضرت(ص) څلور یاران، خلفای راشده.

**چاري چپر** (čāričapár) نر.م. خرگی خرگی، د کوچنیانو د سپرلۍ یو راز لوبه ده.

**چارېکاري** (čārekārí) ښځ.م. ۱) هغه بزگر چې په کښت کې څلورمه یا شپږمه برخه اخلي؛ ۲) ص. نب. د چارېکار.

**چاړ** (čāṛ) نر.م. ۱) د پښو جوړولو د چمیار قالب؛ ۲) دبرستنې استر.

**چاړا** (čāṛā) ص. نر.م. ۱) کونگی؛ ۲) ترتړی؛ ۳) ناپوه؛ ٤) بې خولې او بې ژبې.

**چاړاتوب** (čāṛatób) نر.م. ۱) ترتړی توب، توتله توب؛ ۲) ناپوهي، بېړاتوب.

**چاړه** (čāṛá) ښځ.م. چاړو، چړه، چوړه، ستوره، هغه تېغ چې ترچاکولوی مگرنه راکتېږي.

**چاړه گر** (čāṛagár) نر.م. چاړه جوړوونکی.

**چاړې** (čāṛáy) ښځ.م. ۱) و.گ. چارې؛ ۲) ص. ښځ.م. د چاړا مونث.

**چاشني** (čāšní) نر.م. ۱) ناشتا؛ ۲) څکنه، خواره کتنه؛ ۳) مساله؛ ٤) یوه پنجه ساز.

**چاشي** (čāšáy) نر.م. ځاشي ،اتهران ، ډبرن.

**چاغ** (čāğ) ص.نـر.م.ج. ۱) چـاق ،خورب ، شلند؛ ۲) چست ، تېز؛ ۳) روغ ، رمټ؛ ٤) ځیرې ، ډړی دړې شوی لرګی.

**چاغېدل** (čāğedә́l) مـص. ل. ۱) مـزی کـېدل، ځربېدل؛ ۲) ځیرې کېدل، ماتېدل.

**چاک** (čāk) نر.م. درز ، چاود ، درځ ، ځاک.

**چاکو** (čākú) نر.م. (ج. چاکوګان) چاقو ، هغه تېغ چې د پرې کولو ،مېوو سپینولو او نورو چـارو کې کار ترې اخلي.

**چاکي** (čākí) ص. نب. ۱) درزي ، چاک لرونکی ، چاودلی؛ ۲) شکېدلی؛ ۳) دچاک .

**چاګل** (čāgál) نـر.م. ۱) د اوبـو کـوچنـی ژی یا مشک؛ ۲) دخرمني یا کرمېچ تیکی؛ ۳) اص. ص. تنبل ، کاهل ، سست.

**چاګله** (čāgalá) ښځ.م. ۱) مشکـوره ، مشکوله؛ ۲) ص. ښځ.م. سپاره ښځه ، تنبله ښځه.

**چال** (čāl) نر.م. ۱) فرېب؛ ۲) تګ ، یون؛ ۳) طرز ، ډول؛ ٤) عادت؛ ٥) سطرنج دانو ته ځـانګړی حرکت ورکول؛ ٦) ګرځون؛ ۷) تار ، سپنسی؛ ۸) هنر ، چالاکي؛ ۹) کنده ، کوتی ، ژور ځای؛ ۱۰) کومی ، ګـوګ؛ ۱۱) چنی ، هغـه اس چې سره او سپین وېښتان ولري؛ ۱۲) غـوچـانی؛ ۱۳) ډوغـل؛ ۱٤) ځـالـه؛ ۱٥) زرکـه؛ ۱٦) زاغاوی ، هیلۍ ته ورتـه توره مـرغۍ ده؛ ۱۷) درنګ ، د مالګې کان.

**چالاک** (čālák) ص. نر.م. ۱) مکار ، چلباز ، تګ ۲) تېز ، چابک؛ ۳) هوښیار؛ ٤) فعال ، تکړه.

**چالان** (čālán) ص.نر.م.ج. ۱) جاري ، روان ، چالو ، فعال؛ ۲) نر.م. ۱) بیجـک ، د سامان یا رقم رسید؛ ۲) راداري ، اجازه نامه؛ ۳) تر تحقیق وروسته محکمې ته د تورن لېږنه.

**چالانول** (čālānawә́l) مص.مت. ۱) چالان کول، لګـول ، روانـول ، فعـالول؛ ۲) لېږل، تـورن محکمې ته استول؛ ۳) بندي کول.

**چالانېدل** (čālānedә́l) مص. ل. ۱) چالان کېدل، د انجن لګول کېدل؛ ۲) د جرم له امله محکمې ته لېږل کېدل.

**چالباز** (čālbā́z) ص. نر.م. تګ ، چمباز ، چلي.

**چال چلند** (čālčalánd) نر.م. چال چلن ، چارچلند، تګ راتګ ، سلوک ، رویه.

**چال چوډې** (čālčodé) ښځ.م. چلبازی ، فرېب.

**چالو** (čālú) ق. روان ، چالان ، بهاند ، جاري.

**چاله** (čālá) ښځ.م ۱) غټه اسپه؛ ۲) طریقه ، قاعده، اصول ، طرز؛ ۲) ض. چاته.

**چالي** (čālí) ص.نب. چلي ، فرېبکاره ، تګ.

**چامبېل** (čāmbél) نـر.م. چامبېلي ، چمبېلي، یو ډول سپین ګل دی چې ډېر ښه بوي لري.

**چامپ** (čāmp) نر.م. یو ډول خوندور خواړه دي.

**چامپه** (čāmpá) ښځ.م. (ج. چـامپې) ۱) څپه، موج؛ ۲) د اوږدوالي یو مقیـاس؛ ۳) پنجه، چمبه ، لاس ورکونه.

**چامته** (čāmtá) ښځ.م. و ګ. چمته.

**چان** (čān) نر.م. د کلیسا زنګ ، د کلیسا ټلی.

**چانته** (čāntá) ښځ.م. و ګ. چمته.

**چانچور** (čānčór) نر.م. کـونۍ ، د کـوچنیانو یو ډول لوبه ده .

**چاند ماري** (čāndmārí) ښځ.م. چـارمـاري، د توپک په ګولیو سره د چا وژنه.

**چاندني** (čāndaní) ښځ.م. روجایي ، روی پوښ.

**چانـدي** (čāndí) ص. نـب. ۱) د سـپینـو زرو؛ ۲) سوچه ، پاک ، خالص؛ ۳) صادق.

چاڼډو (čānḍū́) نر.م. یو ډول نشه ده چې افین په اوبو کې پخوي او په چلم کې یې څکوي.
چاڼډه (čānḍá) ښځ.م. ۱) قاش، دړه، نیلمه؛ ۲) حصه، برخه، خوا؛ ۳) ټوټې ټوټې.
چانس (čāns) نر.م. (ج. چانسونه) ۱) تصادف؛ ۲) شانس، موقع؛ ۳) بخت، طالع؛ ٤) چل.
چانسي (čānsí) ص. نر.م. ۱) چمباز، چلي؛ ۲) خوشبخته، نیک بخته، طالعمن.
چاڼ (čāṇ) ص. نر.م. ج. ۱) ستره، غلبېل شوی، کره شوی؛ ۲) نر.م. چڼوونی؛ ۳) تلاش، غوښتنه؛ ٤) خوښونه، انتخابونه.
چاڼځی (čāṇǰáy) ا. چاڼتون، پالایشگاه، د تیلو چاڼځی.
چاڼګر (čāṇgár) ص. چاڼوونکی، چاڼوال.
چاڼواله (čāṇwā́la) ا. چاڼول، چاڼونه، تصفیه.
چاڼول (čāṇawə́l) مص. مت. ۱) چاڼ کول، ستره کول، کره کول؛ ۲) غلبېلول، چڼول؛ ۳) غوره کول، انتخابول؛ ٤) نینول، چڼول.
چاڼه (čāṇa) ښځ.م. چاڼ، چڼ، وسک، ګودره.
چاڼی (čāṇáy) نر.م. ۱) ښکرور غویی، ښکر لرونکی غوځکی؛ ۲) غوځانی، نرګونګټ.
چاڼی (čāṇə́y) ښځ.م. چاڼ، چڼ، چڼوونی.
چاڼېدل (čāṇedə́l) مص. ل ۱) چاڼ کېدل، چڼېدل، ستره کېدل، پاکېدل؛ ۲) نینېدل.
چاوجی (čāwjə́y) ښځ.م. جاوجی، دجامې څنډه، ژی، کناره.
چاود (čāwd) نر.م. درز، چاک، چود.
چاودل (čāwdə́l) مص. ل. ۱) چودل، درز به کې راتلل، ترکېدل؛ ۲) انفلاق کول، انفجار کول.
چاودنه (čāwdə́na) ښځ.م. ۱) ترکېدنه، چودنه، درز په کې کېدنه؛ ۲) انفلاق، انفجار.
چاودول (čāwdawə́l) مص. مت. ۱) چوول، منفجره کول، الوځول؛ ۲) درز کول.
چاوده (čā́wda) ښځ.م. (ج. چاودې) د یخنی له لامله د لاسو او پښو څرمن یا پوست ترکېدنه.
چاودی (čā́wday) نر.م. ۱) چاودلی؛ ۲) درز.
چاوډېدل (čāwdedə́l) مص. ل. ۱) درز کېدل، ترکېدل؛ ۲) منفجره کېدل، سره چودل.
چاودینک (čāwdīnák) ص. نر.م. چاولی، بې حیا، بې شرم، سپین سترګی، چاولی.
چاول (čāwál) نر.م. ۱) د اوبو موری، د اوبو دهنه؛ ۲) شال، شاقول، شاول.
چاوله (čā́wla) ښځ.م. چاول، د اوبو دهنه.
چاوڼی (čāwṇáy) ښځ.م. و.ګ. چوڼی.
چاوه (čāwá) ښځ.م. یو ترکیب دی چې په چاېو کې ګوړه او سونډ سره اچوي او ایشوي.
چای (čāy) نر. ښځ.م. ج. یو بوټی دی چې پاڼې تر شکولو وروسته وچوي.
چای خوري (čāyxorí) ص. نب. ۱) د چای، هغه څه چې په چای چښلو پورې اړه لري؛ ۲) ښځ.م. ګیلاس، پیاله د چای خوری کاچوغه.
چای دمی (čāydamáy) چاینکه، چاینک.
چایل (čāyə́l) نر.م. نقاب، پرده، روی بند.
چاینک (čāynák) نر.م. چاینکه، د چای دمولو فلزی لوښی.
چپ⁽¹⁾ (čup) ص. نب. خاموش، غلی، چوپ.
چپ⁽²⁾ (čap) ق. ۱) بغیر لـه، بې له؛ ۲) بې لارې، خطا؛ ۳) سپک؛ ٤) مخالف، ضد؛ ۵) کیڼ.
چپاتی (čapātáy) نر.م. څپتی، چپاتی، پاستی، ګرده، نری سپوره ډوډی.
چپاته (čapātá) ښځ.م. کپی، یو ډول پنې یا موچنې.
چپاتې (čapātí) ښځ.م. ټوکې، مسخرې، ملنډې.

**چپ اړخی** (čaparxáy) ص. کینپال، کین اړخی.

**چپاو** (čapáw) نر.م. (ج. چپاوونه) ۱) چاپه، یرغل، ناڅاپه برید؛ ۲) برگ آس، بیور آس.

**چپاول** (čapāwә́l) نر.م. مخکنی تولی، د سر تولی، پېشقراول.

**چپاوول** (čapāwa wә́l) مص.مت. تالاکول، لوټول، تالاترغه کول، چوروول، یرغل کونه.

**چپاوي** (čapāwí) ص.نب. ۱) چپاوکوونکی، لوټوونکی؛ ۲) د چپاو؛ ۳) تېز، تند، چابک؛ ٤) سرزوری، او سرټمبه.

**چپاوېدل** (čapāwedә́l) مص.ل. لوټ کېدل، تاراجېدل، چورکېدل، تالا کېدل، چورېدل.

**چپايي** (čupāyí) ښځ.م. چوپوالی، خاموشي.

**چپتری** (čaptrә́y) ښځ.م. د شفتلو په څېر یو ډول شینکی دی.

**چپتوب**[1] (ču,ptób) نر.م. چوپتیا، چوپوالی، خاموشي، غلي کېدنه، کراره کراري.

**چپتوب**[2] (čaptób) نر.م. ۱) مخالفوالی، مخالفت ضدیت؛ ۲) کوږوالی؛ ۳) بي لاریتوب.

**چپټ** (čapát) ص. نر.م. ۱) توکمار؛ ۲) کرتو؛ ۳) تکړه هلک، تندرستهسړي؛ ٤) څرگند، چیته؛ ٥) صادق؛ ٦) تباه؛ ۷) اشر، بسگر، بلندره، پگره، بگاره، تړ، د اوبو د بند د تړلو لپاره اشر.

**چپټه**[1] (čupatá) ښځ.م. چوپټه، هغه لرگي چې د تیږو په دېوال کې په پسورسره اېښودل کېږي.

**چپټه**[2] (čapatá) ښځ.م. ۱) گړبندوکي ښځه، کرتنه ښځه؛ ۲) بي مانا او ساده ښځه.

**چپچاپ** (č(a,u)pčā́p) ص.نر.م.ج. خاموش، ارام، غلی، کرار، په پټه خوله.

**چپچاپېره** (čapčāpéra) ص.نب. چاپېره، شاو خوا، گرداگرد.

**چپچور** (čapčū́r) ص. نر.م. ج. ۱) چرچور، مات شوی، ذري ذري؛ ۲) نر.م. لوټ، تالان.

**چپر** (čapár) نر.م. ۱) استازي، پیغام وړونکی؛ ۲) گړندی تلونکی؛ ۳) څپری، څپر، ځاله.

**چپراس** (čaprā́s) نر.م. د وره، کړکۍ او... قلفي نښلوونکې او خوځوونکی وسیله ده.

**چپرغټ** (čapargā́t) ص. نر.م. ۱) څورب، غټ، شلند؛ ۲) نر.م. چاغ سړی، روغ هلک.

**چپرکټ** (čaparkát) نر.م. عصري کټ دی چې له لرگیو، تختو او اوسپنو څخه جوړېږي.

**چپرگی** (čapargáy) نر.م (ج. چپرگي) ځهلانگه، له ونې څخه راپرېکړې وره څانگه.

**چپره** (čaprá) ښځ.م. (ج. چپرې) د څرمنې د پاکولو او توږلو لوېه آله.

**چپری** (čaparáy) نر.م. (ج. چپري) ۱) ورکوټی تالاو؛ ۲) څپر، له لښتو څخه جوړ شوی پلن څپر چې د درمند د میده کولو لپاره په غوایانو پورې تړل کېږي.

**چپړ** (čapáṛ) ص.نر.م. ۱) چپلیت، اوار؛ ۲) څورب ساتلی، چاغ، شلند.

**چپړاخه** (čapṛā́xa) ښځ.م. چاپېره، چپلاخه، څپېره، چپړاکه، څپلاخه، څاپېره، څپېړه.

**چپړاسي** (čapṛāsí) نر.م. چپراسی، پیاده، ملازم، خدمتگار، د ښوونځي پیاده.

**چپړتاخ** (čapaṛtā́x) نر.م. چندرو، چپړیخ، چغی، چیندری، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**چپړوس** (čapṛū́s) ص.نر.م. غوړه مال، چاپلوس.

**چپړي** (čapṛí) ښځ.م. چیچړه، پیپرک، پیپړه، مانده یا خواره غوښه.

**چپړی چپړو** (čapṛәyčapṛó) ښځ.م. لته ښځه، سپاره ښځه.

**چپک** (čapák) ص. نر. م. ج. چپې، کوږ سترگی، بهنگا، چپا، قپا، کنې، چنگر، چغر.

**چُپک** (čupák) نر. م. ۱) باز؛ ۲) د باښې نر.

**چپکتوب** (čapaktób) نر. م. چپکتیا، د سترگو کوږوالی، بهنگوالي.

**چپکو** (čapákú) ص. نب. چپې، کیڼ لاسی، هغه ځوک چې په کیڼ لاس زیات کار کوي.

**چپکه** (čapáka) ښځ. م. تپکه، تپې، ځپیاکه.

**چپلکه** (čapláka) ښځ. م. (ج. چپلکې) ځپلکه، سرپایي، چوستکه، چپاتې، چپاته.

**چپلۍ** (čapláy) ښځ. م. ج. و گ. ځپلۍ.

**چپلیت** (čaplít) ص. نر. م. ج. چپریت، هوار.

**چپلیتول** (čaplitawə́l) مص. مت. چپریتول، اوارول، چخپیتول، چیتول.

**چپنډه** (čapanḍá) ښځ. م. (ج. چپنډې) تو تۍ، د لرگي کاسه، د لرگي کندولی.

**چپنک** (čapanák) نر. م. د ماشومانو چپنه.

**چپنه** (čapána) ښځ. م. (ج. چپنې) چوغه، قبا، شوقه، چپن.

**چپو** (čapú) نر. م. د بېړۍ ځپه، د کشتۍ چلولو چپه، د بېړۍ چلولو چپه.

**چپوالی**[1] (čapwā́lay) نر. م. ۱) چپتیا، مخالفت ۲) غلطي، تکي.

**چپوالی**[2] (čupwā́lay) نر. م. خاموشي، چپتیا.

**چپ و چور** (čapočúr) ص. نر. م. ج. تالا، تالا ترغه، لوټ شوی، چورشوی.

**چپوښ** (čapūṣ) ص. نر. م. ښانگور، لینگور، اوږد لینگی، د اوږدو لینگیو خاوند.

**چپ و غړوپ** (čapoğrúp) ص. نر. م. بالکل خاموش، غلی پلی، ببخي چوپ.

**چپول**[1] (čupawə́l) مص. مت. غلی کول، کرارول.

**چپول**[2] (čapól) ص. نر. م. ۱) چنگر، کوږ سترگی ۲) چوډی، پیډی، کجی.

**چپول**[3] (čapawə́l) مص. مت ۱) مچول، ښکلول ۲) بچول، اړول؛ ۳) لـه مخې لـمبـرې کـول؛ ٤) چوپل، شړپول؛ ۵) له شونډو اواز ایستل.

**چپونی** (čapūnáy) نر. م. د صابون پوچکه، د صابون خروکی، د صابون پوچک.

**چپونی** (čapúnay) نر. م. (ج. چپوني) ۱) ځپونی دسترخوان کوندری؛ ۲) وړوکی تپکری.

**چپه** (čapá) ښځ. م. ۱) ځپک، د ځلورو گوتو اندازه؛ ۲) د بېړۍ چپه؛ ۳) اپوته، پړمخ، نسکور؛ ٤) د ناروغۍ غلبه؛ ۵) د اوبو ځپه، موج؛ ٦) منډه، د دوو غوایانو غوبل؛ ۷) مچه، مچو، مچکو؛ ۸) مخالفت؛ ۹) ناراستي، بدبختي.

**چپه پاتا** (čapapātā́) ښځ. م. شړنه، طرد.

**چپه چپايي** (čapačupāyí) ښځ. م. ارامه ارامي، چوپه چوپتیا، کراره کراري.

**چپه کول** (čapakawə́l) مص. مت. اپوته کول پړمخ کول، اړول، نسکورول.

**چپه کېدل** (čapakedə́l) مص. ل. ۱) اوښتل اپوته کېدل؛ ۲) قسمت خرابېدل.

**چپه لار** (čapalā́r) ښځ. م. ۱) کږه لاره، غلطه لاره؛ ۲) کږه شینځه، د وېښتو کږه لاره.

**چپی** (čapáy) ص. نر. م. ۱) چپ سترگی، چغر؛ ۲) کیڼ لاس؛ ۳) کوږ ښکری غوایی؛ ٤) هغه غوایی چې ښکر یې مات وي ۵) نر. م. چاپی، تاپی؛ ۲) نښانه، نښه.

**چپیا** (čupyā́) ښځ. م. خاموشي، کراري، ارامي.

**چپېدل**[1] (čupedə́l) مص. ل. غلی کېدل، کرارېدل.

**چپېدل**[2] (čapedə́l) مص. ل. گوښه کېدل، کږېدل، ځنگ ته کېدل.

چپېړه (čapeṛá) ښځ.م. څپېړه، چپلاخه.

چت (čat) نر.م. ۱) کاښ، سقف؛ ۲) پوړ، منزل؛ ۳) پوچ، تش کالتوس؛ ۲) د چتکي اواز.

چتر (čatə́r) نر.م. ۱) چترکی، ډېک، وړه سپېره یا خړه مرغۍ ده؛ ۲) کمزوری، بې قوته، ضعیف؛ ۳) څلور غاښې اوښ؛ ٤) پکه ککرۍ، تاس کپرۍ، کتی سر؛ ٥) د زخم تر جوړېدو وروسته پاتې ننبه؛ ٦) چجه، بلۍ؛ ۷) په بیاتي پرېکړې زلفې چې په تندي رازانګي؛ ۸) ص. نر.م. صفا پاک؛ ۹) لویه چترۍ؛ ۲) و ګ. پراشوټ؛ ۳) د بام راوتلې او چتر غوندې برخه.

چترک (čətrák) نر.م. د بېلېو یوه لوبه.

چترکی (čatrakáy) ص. نر.م. لوېشتکی، لنډی، لوېشتهنک، ټیټکی، غونډکی.

چترنګ (čəturáng) نر.م. مو. د یوه طرز نوم دی چې په یوه برخه کې یې مانا لرونکي کلیمې او په پاتو درو برخو کې یې د ترانې، تروټ، او سرګم مهمل الفاظ راځي.

چتره لار (čatralā́r) ښځ.م. څرګنده لاره، معلومه لاره، عامه لاره، پاکه لیاره، سپینه لاره.

چترۍ (čatrə́y) ښځ.م. ۱) وړوکی چتر؛ ۲) ص. ښځ.م. پاکه لاره؛ ۳) داغي، داغداره.

چتړ (čatár̥) نر.م. پر توکر باندې لګول شوی ټاپه.

چتکي چتکي (čatkičatkí) ص. نب. ۱) لږ لږ، کم کم؛ ۲) تکي تکي، خال خال.

چتله (čatlá) ص. نب. ۱) سولېدلی، منبلی شوی؛ ۲) اوره شوی، میده شوی.

چته (čatá) ښځ.م. ۱) د ګبینه تخته، د مچیو تمبکه؛ ۲) رنګ، څېره؛ ۳) سرپوښه بازار؛ ٤) فکر، سوچ، اند، خیال؛ ٥) ځان ساتنه؛ ٦) حد، اندازه، انساني او اخلاقي حدود.

چتی[۱] (čatáy) نر.م. ۱) چترکی، چتکی، چتر؛ ۲) چوتی، لنګ؛ ۲) جانګی، نهکر، سلدراج.

چتی[۲] (čutáy) نر.م. لپخکی، لخک، چوړ، پونکي، لخه کی.

چتیز (čatíz) ص. نر.م. ج. پوریز، طبقه یي.

چټ (čaṭ) ص. نر.م. ۱) غریب؛ ۲) وېره خرېلی؛ ۳) تباه؛ ٤) نر.م. کودۍ، کپر؛ ٥) هغه لوښې چې ناولې اوبه په کې اچول کېږي؛ ٦) پای ته رسېدلی کار؛ ۷) تیار، چټک؛ ۸) مست ځوان؛ ۹) مجرد او بېکارسری؛ ۱۰) ق. بالکل.

چټاق (čaṭā́q) نر.م. ۱) شوخ، شیطان؛ ۲) مج. حرامزاده؛ ۳) تېز، بې پروا، چالاک.

چټاک (čaṭā́k) نر.م. چیټک، چیټاکی، چټاکی، د پاو څلورمه برخه؛ ۲) لږ شی، لږ څیز.

چټاوټ (čaṭā́wáṭ) نر.م. ناڅاپي ګوزار، ناڅاپي وار، نابېره وار.

چټایي (čaṭāyí) ښځ.م. پلاستیکي سترنجي، پوزۍ، انډېرۍ، پوزکی، کمکی پېڅول.

چټ پټ (čaṭpaṭ) ق. ۱) سمدلاسه، ژر ترژره؛ ۲) تباه شوی؛ ٤) ببخي خلاص شوی (کار)

چټ پټي (čaṭpaṭí) ص. نب. ۱) سملاسي، سم له لاسه، له واره سره؛ ۲) تیار، چمتو، اماده.

چټک (čaṭák) ص. نر.م. ۱) تېز، چابک، چست؛ ۲) نر.م. و ګ. څټک.

چټک تسمه (čaṭaktasmá) ښځ.م. ملابند، ملاتړونی، د ملا تړلو پټی، ملاوستنی.

چټکتوب (čaṭaktób) نر.م. تېزي، چستي، چابکي، چټکي، چټکتیا، چټکوالی.

چټکول (čaṭakawə́l) مص.مت. تېزول، چابکول، جلتول، چالاکول، چویکول.

چټکه (čaṭká) ښځ.م. د الوان ټوټه، د سره توکي ټوټه.

چټکی (čatkáy) نر.م. ښکنځلی، زیږی.
چټکی (čatkáy) ښځ.م. ۱) څنکه؛ ۲) څری، چنکه، چوټی، د هندوانو د سر اوږده ویښتان؛ ۳) سکوندکه، سکوندارہ، نوکارہ.
چټکېدل (čatakedә́l) مص.ل. تېزېدل،چابکېدل.
چټل (čatә́l) ص. نر.م.ج. ککړ، ناولی، ناپاکه.
چټلتوب (čataltób) نر.م. ککړوالی، ناولتوب، مرداري، مردارتوب، چټلتیا، چټلوالی.
چټلول (catalawal) مص. مت. ککړول، خیرنول، ناولی کول، مردارول.
چټلي (čatә́l) ښځ.م. ناپاکي، ناولتیا، مرداري، ککړتیا.
چټلېدل (čataledә́l) مص.ل. ککړېدل، خیرنېدل، ناولی کېدل، مردارېدل.
چټني (čatní) ښځ.م. چکني، تریو خواړه دی.
چټو[1] (čatú) نر.م. د لرګي اونګ، د لرګي مندسته یا بغری، د لرګي یو ډول لنګری.
چټو[2] (čató) ص. نب. لړو، لړو ښتو، چټو لړو، لاړي ښتي، فضول خرڅه، مسرف.
چټول (čatawә́l) مص. ل. ۱) تباه کول، بربادول؛ ۲) سرته رسول، پوره کول.
چټولړو (čatūlarú) ص. نر.م.ج. ۱) له یوه سره ګډوډ او مردار، ګډوله؛ ۲) فضول خرڅه.
چټه (čata) ښځ.م. ۱) سود خوري، سود کول؛ ۲) بې باکه ښځه، مسته ښځه، ازاده ښځه.
چټی (čatә́y) ښځ.م. ۱) پوړنی، تیکری، زروکی؛ ۲) لیک، خط، حواله، رقعه.
چټي (čatí) ص.نب ۱) فضول، اوباش؛ ۲) مضر؛ ۳) تروټه، تاوان.
چټیات (čatyát) نر.م. فضولې او چټي خبرې.
چټي برو (čatiburó) ص.نب. اوباش سړی.

چټېدل (čatedә́l) مص.ل. ۱) بربادېدل، تباه کېدل؛ ۲) ختمېدل، سرته رسېدل.
چټي رسان (čitayrasán) نر.م. ډاګي، خط راوړونکی، لیک راوړونکی، پوسته رسان.
چج (čaj) نر.م. ۱) چج، د غنم او نورې غلې دانې د پاکولو آله؛ ۲) پښتنی.
چج بواري (čajbuwārí) ښځ.م. صفايي، ستره کونه، پاکونه، صفا کونه.
چجک (čaják) نر.م. ۱) د توپک ګوړ، د توپک لینډی؛ ۲) د توپک ماشه.
چجکی (čajakáy) نر.م. ۱) تلکه، دام، پړکه؛ ۲) ښځ.م. اړخی، پښتنی، د بدن د پښتیو سر؛ ۳) نر.م. د کبانو د نیولو جال؛ ۲) پرده، بیتر؛ ۳) وړوکی چج.
چجوايي (čajwāyí) ښځ.م. د غلې د پاکولو یا صفاکولو کار او کسب.
چجه (čajá) ښځ.م. ۱) د چت وزر، د چت پیک؛ ۲) د کبانو د نیولو لپاره لښتیز دام؛ ۳) پښتنی؛ ٤) د مار د سرجګ نیول؛ ٥) شپول؛ ٦) هغه لرګی چې د مات شوي هډوکي ترل کېږي.
چچ (čač) نر.م ۱) پرویزی، چج، غلبېل؛ ۲) له مزرو څخه جوړ شوی لوښی؛ ۳) ګندېره، هغه توکری چې شیدې او مستې ترې لاندې ایښودل کېږي.
چچاړی (čačā́ray) نر.م. تاپو، جزیره.
چچخه (č(i,a)čә́xa) ښځ.م. نسل، تومنه.
چچړ (čičár) نر.م. بې شرمه او سپین سترګی سړی
چچړن (čačrán) ص.نر.م. ۱) چوخړن، چخن، شوک چې سترګې یې تل چخې کوي؛ ۲) اوېړن اوبجن، نری، چچړوبن، چړچوبن.
چچړوبن (čačrobán) ص. نر.م. ۱) چیږچوبن، اوېړن؛ ۲) باسي نګولی؛ ۳) چیخن، چخړن.

**چچگر** (čaǧár) نر.م. غلبېل جوړونکی، چېچ جوړوونکی او پلورونکی.

**چچنه** (čacə́na) ښځ.م. چنچنه، یوه مرغۍ ده.

**چچو** (čačó) ښځ.م. ۱) تی، سینه؛ ۲) د ماشوم لاس، چاچی.

**چچوغاړه** (cacogara) ښځ.م. پر اوږو باندې د کوچني د سپرولو حالت.

**چچوګی** (čačogáy) ښځ.م. د چچو مصغر.

**چچه** (čáča) ښځ.م. اچه، اچې، د وزو د شړلو اواز.

**چچې** (čačé) ښځ.م ۱) د وړو په ژبه لاس ته وایي؛ ۲) چندرو، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**چچی** (čičáy) نر.م. و.گ. غاښې چچی.

**چخ** (č(a,u)x) ص.نر.م. ج. ښخ، چوخ، ورننوتی.

**چخ** (čax) نر.م. کورې، چیغه، د سپي د شړلو اواز.

**چخا** (čxā) نر.م. ۱) کوچنیان سپي ته چخا وایي؛ ۲) کورې، چغه، چخه، چیغه، توتو.

**چخاښکی** (čxaṣkáy) نر.م. زامه، ژامه، د زامې اخیره برخه.

**چخپت** (čaxpít) ص.نر.م. چیت پیت، چخپیریت، مېلی شوی، چپېریت، چپېرېخ.

**چخپیتوالی** (čaxpitwā́lay) نر.م. چپېریخوالی، چیت پیتوالی، پایمالېدنه.

**چخپیتول** (čaxpitawə́l) مص.مت. چپېریتول، چپېریخول، چیتول، پایمالول، چیت پیتول، چخپیتول.

**چختاړ** (čaxtā́r) ص.نر.م. چیختاړ، چخپیریت، لتاړ، پایمال، چختاړ شوی، چت شوی.

**چختاړول** (čəxtāṛawə́l) مص.مت. چیتول، لتاړول، موښل، خرمیچول.

**چختک** (čaxták) نر.م. ۱) په کوهي او یا کاریز کې کارکوونکی؛ ۲) دوه خانې موږی.

**چخته** (čaxtá) ښځ.م. پتک، هغه نرم لرګی چې کوچنیان وړې وړې ګټکې په ولي.

**چخچی** (čaxčáy) نر.م. تیلی، نری د کی، نری او لنډ لرګی چې سابه وربانډې للون کوي.

**چخړ** (čəxáṛ) نر.م. چکړ، چیکړ، ختې، چیکړې.

**چخړبه** (čəxṛabá) ښځ.م. ۱) ختې، چکړ، چیکړ، د باران له لامله څمکه خته کېدنه؛ ۲) ملغوبه، ګډوډ شوی څیز؛ ۳) زبېښنه.

**چخړک** (čəxṛák) ص.نر.م. چخن، چخړن، چیخن چخړې سترګې سړی.

**چخړوبن** (čaxṛobán) ص.نر.م. نری، اوبلن.

**چخړوبنتوب** (čəxṛobantób) نر.م. چخړوبنتیا، چخړوبنوالی، اوبړنوالی، اوبلنوالی.

**چخړوبنول** (čəxṛobanawə́l) مص.مت. چخړوبنول، اوبلنول، اوبجنول، نرمول.

**چخړوبنېدل** (čəxṛobanedə́l) مص.ل. اوبړنېدل، نرمېدل، اتوب کېدل، چخړوبن کېدل.

**چخړه** (čə́xṛa) ښځ.م. (ج. چخړې) چخنه، چیخې، چخه، چخړی، د سترګې چخې.

**چخکی** (čəxakáy) نر.م. کیخی، کوخک، کخکی، سپین، نری او کوچنی چینجی.

**چخل** (čixə́l) مص.مت. ننه ویستل، منډل.

**چخله** (čixála) ښځ.م. چوکه، د چوخولو آله.

**چخلی** (čixaláy) مف.نر. چوخول شوی، چوخېدلی، چوخ شوی، چخ شوی.

**چخن** (č(i,a)xán) ص.نر.م. ۱) زولن، چوخړن، چخن سترګی؛ ۲) ناولی؛ ۳) تت؛ ٤) پساتي.

**چخندی** (čəxandáy) نر.م. کرندی، تېره لرګی دی چې ګازرې او... پرې ایستل کېږي.

**چخنه** (čixə́na) ښځ.م. چخونه، چوخونه، سوخونه منډنه، ننه ایستنه، چوکه کونه.

**چخول** (č(a,u)xawә́l) مص. مت. و گ. چوخول.

**چخولی** (čixawә́lay) مف. نر. م. ۱) سوخولی، چوکه کړی، ننه ایستلی؛ ۲) لمسولی، پارولی؛ ۳) ښخ شوی، لک شوی.

**چخوښیا** (čixuṇyā́) ص. نب. ۱) شوړېدلی، وروست، امباري؛ ۲) چنیاسن، چنیاسي.

**چخه** (čáxa) ښځ. م ۱) و گ. چخړی؛ ۲) و گ. چخ ۳) څخه؛ ٤) د سپي د شړلو اواز؛ ٥) پخه، لږ شی، لږ مقدار.

**چخې** (čaxé) ښځ. م. ۱) د سپي د شړلو اواز؛ ۲) دچخه د جمعې شکل؛ ۳) و گ. چخ.

**چخی** (čaxé,čixáy) ښځ. ج. چخـر، چـوخـړی، چړیخی، د سترګو خیری، چوخنې.

**چخېدل** (čixedә́l) مـص. ل. ۱) منـډل کـېدل، چوخېدل؛ ۲) تحریکېدل، پارېدل، ښخېدل.

**چخېدونی** (čixedū́nay) نـر. م. سـوخېدونی، منډل کېدونی، د چخېدو او منډل کېدو آله.

**چدام** (čedā́m) نر. م. (ج. چـدامونه) لـږ شی، لـږ کوټی، د یوې توليې اتمه برخه.

**چدی** (čedáy) نر. م. چې دی؛ دا کلیمه د تکیه کلام په ډول استعمالېږي.

**چډل** (čaḍә́l) نر. م. د خوراک ډک کنډول، له خوړو څخه ډک خاورین لوښی.

**چډوسکی** (čaḍū́skay) نـر. م. چډوکی، د هندوانې او ختکي پوټکی.

**چر** (čar) نر. م. ۱) د چـرچنـې اواز؛ ۲) د توکـره د شیرلو اواز؛ ۳) طرز، عادت؛ ٤) سېلابي خاوره او خړه؛ ٥) چـری، د خوسـا اوبو لښتی؛ ٦) په غوره کې؛ ۷) پارونه، لمسونه.

**چراتی** (čarātáy) ښځ. م. د توپک هغه چرې چې له کانو څخه جوړ شوي وي.

**چرار** (čarā́r) نر. م. ۱) د مـرغیو او چـرچرو اواز؛ ۲) د توکره د شیرې کولو اواز.

**چراسپه** (čarāspá) ښځ. م. دوزو لـه وژغنو څـخه جوړ شوی پړی؛ د اوښ د بار د تړلو طریقه.

**چراغ** (črā́ǧ) نر. م. (ج. چراغونه) څراغ، ډیوه.

**چراغان** (čәrāǧā́n) نر. م. ج. څراغان، د خـوښۍ او جشن په وخت کې څراغونه لګول.

**چراغک** (črāǧák) نر. م. وړوکی څراغ، څراغګوټی څراغکی.

**چراګاه** (čarāǧā́h) ښځ. م (ج. چراګاوې) څرځای، ورشو، د مال د څرولو ځای.

**چراوی** (čarāwáy) ص. نـر. م. تقلید کـوونکی، ملډ، پېښې کوونکی، پېښمار.

**چرايي** (čarāyí) ښځ. م. د لرګیو د شیرلو او ماتولو مزدوري ا کار.

**چربانګ** (čәrbā́ng) نر. م. دچرګ د بانګ وخت، د شپې اخېره برخه، وروستی شومه.

**چربانګی** (čәrbāngáy) نر. م. پشلمی.

**چربل** (čarbál) نـر. م. د آس جلـو چې له سـپنسیو څخه جوړېږي.

**چربور** (čarbór) ق. چیرې بیرې، غونډ، تول.

**چربوړی** (čarbóṛay) نر. م. بوټۍ، د غوښې چم، بوټۍ غوښه، شله غوښه، د غوښې سرخې.

**چربه** (čarbá) ښځ. م. خاکه، نقل، مسوده.

**چرت**[1] (čurt) نر. م. (ج. چرتونه) خیال، چـورت، فکر، تصور، مزاج، طبیعت.

**چرت**[2] (črat) نـر. م. ۱) چـرت، د اوبـو داره؛ ۲) دسترګو رندېدنه.

**چرتا** (čratá) ښځ. م. د لاړو د توکلو اواز.

**چرتکی**[1] (čratakáy) نـر. م. اوبـاش، شـروبی، اوبه شیندونکی، اوشیندی.

چرتکی[2] (čərtakáy) ص. نر.م. ۱) بې ثباته، موقتي؛ ۲) بې ځایه ترېکې وهونکی.

چرته (čárta) ښځ.م ۱) څېره، بڼه؛ ۲) ض. چېرته، چېرې، کوم ځای ته، استفهامي مکاني ضمیر دی.

چرتي (čurtí) ص. نب. فکري، په چرت کې، چورتي، اندېښمن، په خیال کې.

چړته (čurṭá) ښځ.م. هېلۍ، زړه هیلۍ.

چرچر (čərčár) نر.م. ۱) د مرغیو اواز؛ ۲) چتې غږېدنه؛ ۲) څرڅر، اوبه ته د اوبو د ځنبلو په وخت کې استعمالېږي.

چرچرک (čərčərák) ص. نر.م. ۱) ګړبو، چرچري بېځایه خبرې کوونکی؛ ۲) یو ډول حشره ده.

چرچوبی (čarčobáy) ښځ.م. و.ګ. چرچوبی.

چرچور (čarčū́r) نر.م. ۱) شور، ځور؛ ۲) ص. نر. م. ج. تباه، برباد؛ ۳) ونډې ونډې کونه.

چرچورکی (čərčurakáy) ښځ.م. کسرۍ، چرچوری، چورچورکه، یو ډول حشره ده.

چرچونګی (čarčūngáy) ښځ.م. یو ډول مرغۍ ده.

چرچه (čarčá) ښځ.م. و.ګ. چرچه.

چرخ (čarx) نر.م. و.ګ. څرخ.

چرخل (čarxíl) نر.م. ۱) کمرکسره، چرخولک، د چرګ تاج؛ ۲) د پتکي شمله.

چرخولی (čarxwaláy) نر.م. د دیګي د سر پوښ لاستی (موټی).

چرخه (čarxá) ښځ.م. د سپنسیو د غړلو اله.

چرخي (čarxí) ښځ.م ۱) څرخه، چرخه؛ ۲) د ضرب نښه (×).

چرخېره (čarxeṛá) ښځ.م. چوښتي، تورتورۍ، خوښکی، کشکو، چوشکی، خوښکوری.

چرروت (čururót) نر.م. ۱) د مرز اواز؛ ۲) مج. د کمزوري او بې زړه سړي خبرې.

چړوکی (čarrokáy) نر.م. سپېرخکی، کیلبک، د سپاږې د تیر هغه لرګی چې د سرېانۍ په واسطه جغ او تیر سره کلکوي.

چړه (čirrá) ښځ.م. چیړه، ریتاړه، ترانګه، رښکی، تری، لته، څیره، زړه رنجه.

چړی (čarráy) نر.م. جوړی، څوړی، څوړه، یو خړه مرغۍ ده.

چرس (čars) نر.م. حشیش، مخدره ماده ده چې د بنګو د بوټي له ګردې څخه لاس ته راځي.

چرسي (čarsí) ص. نر.م. (ج. چرسیان) ۱) د چرسو عملي، پر چرسو روږدی.

چرغ (čarğ) نر.م. ملاماتی، تپوس ته ورته یو ښکاري مرغه دی چې سپینه لکۍ لري.

چرغړه (čarğaṛá) ښځ.م. په قاقا خندا.

چرغزه (čarğáza) ښځ.م. غزې، یو ډول خړه مرغۍ ده چې په اوبو کې ګرځي.

چرغز (čarğáz) نر.م. چرګ بانګ، چرګ غږ.

چرغو (čarğū́) نر.م. شین ګلی، یو ډول بوټی دی.

چرک (č(i,a)rk) نر.م. ۱) خیرنتوب، چتلې؛ ۲) زوې، نو، د دانې مرداري اوبه؛ ۵) څوځه، خبریز، هغه څه چې سړي تېره وي؛ ۶) برېښ، څرېکه، درد څرېکه، رښکه.

چرکلی (čarkaláy) نر.م. یو ډول ګیاه ده.

چرکېدل (čarkedə́l) مص. ل. د بدن پوستکی مېږي مېږي کېدل، بدن ته ستنې ورچوخېدل.

چرګ (čarg) نر.م. ۱) یو ډول کورنی مرغه دی؛ ۲) د ښاروي په تندي کې سپین ټاپی.

چرګ بانګ (čargbáng) نر.م. چرغز، چرګ غږ، د چرګ د بانګ وخت، د پېشلمي وخت.

چرګ برګ (čragbrág) ص. نر.م. ۱) برګ، ترګ، تور سپین؛ ۲) منافق، تګ، چمباز.

چرگ خالی (čərgxā́lay) نر.م. چرگ غالی، کوډله، کوډی، د چرگانو کوډنۍ، مرغانچه.

چرگ سابه (čərgsābə́) نر.ج. پالک، چرگوړی، یو ډول مشهور سابه دي.

چرگک (čərgák) نر.م. ملاچرگک، کوډی چرگ، کوکوبیښ، بوبوتنکی، ملاګوډ.

چرگ مرگو (čərgmargó) نر.م. تیغی، توغی، توغکی، د چرگانو یو ډول ناروغي ده.

چرگ نارې (čərgnāré) ښځ.م. چرگ بانگ، چرگ غږ، چربانگ، چرگ بړغ.

چرگ ناری (čərgnāráy) نر.م. هغه مېلمستیا چې چرگ په کې پوخ شوی وي.

چرگوټی (čərgúṭay) نر.م. چرگوړی، وړوکی چرگ، ورکوټی چرگ، د چرگ تصغیر.

چرگی (čərgáy) ص. نر.م. هغه غويي (غوښکی) چې په تندي سپين داغ ولري.

چرگۍ (čərgə́y) ښځ.م. څلور کنجه نغری چې د کوټې په منځ کنج کې ابستل شوې وي.

چرلاو (čarlā́w) نر.م. ماشينخانه، د مشينونو کوټه، د ماشينونو ځای.

چرلايي (čarlāyí) ښځ.م. چلوايي، يو ډول سابه دي.

چرلټ (čurláṭ) ق. ۱) چورلټ، گردسره، بېخي، قطعي؛ ۲) تمام، ټول، سراسر.

چرلکی (čurlakáy) نر.م. ۱) د پښو پونده، د پيزار پونده، د مچنې پونده؛ ۲) د ښځې د مخصوص ځای چونگک او کچه.

چرلنډ (čurlánḍ) نر.م. عاجز، خاکسار، متواضع.

چرلنډی (čurlanḍáy) نر.م. چرلندی، پرپره.

چرم (čarm) نر.م. څرمن، پوست، پوټکی.

چرمباز (čarambā́z) نر.م. سرمباز، ترمباز، د غوېل د باندې خواته اخري غوايي.

چرمښکۍ (čarmaṣkə́y) ښځ.م. شرموښکۍ، چرمښی، څرمښکی، کرمښار.

چرمک (čarmák) نر.م. د څرخې د دوک څرمن؛ هغه څرمن چې د دوک لاندنۍ برخه په کې بندېږي.

چرموچرگ (čarmučárg) نر.م. ۱) چرموچرې، ډېر پوست شوی؛ ۲) کورنی چرمښکی.

چرموړ (čarmóṛ) ص.نر.م. پايمال، مبتل شوی، مروړل شوی، خړ مېچ شوی، چخپيت شوی.

چرموړل (čarmoṛál) مص.مت. پايمالول، مروړل، مبتل، چخپيتول، چرموړول.

چرمه (čarmá) ښځ.م. ليس، چيرمه، پلن زري تار، د زر تار ونري پټه.

چرمي (čarmí) ص.نب. څرمين، دڅرمنې، د څرمنې سره تړلی، په څرمن اړوند.

چرمينه (čarminá) ورگينه، باني، د څرمنې پرې.

چرند (čaránd) ص.نر.م.ج. کړتن، قړتو، قړتن.

چرندک (čurandák) نر.م. چورندک، چتی، چتکی، چيتکی، پتکی.

چرنگ (čráng) نر.م. چرنک، شهدوپي، پيورکی، يو ډول بوټی دی.

چُرنگی (čurangáy) نر.م. ناره يي مرز.

چرنۍ (čarnə́y) ښځ.م. د بورۍ توته، د ټاټ توته.

چروب (črób) ص. نر. م. شورب، چاغ، مزی.

چروډه (čroḍá) ښځ.م. کوتی، غوچوری، قوتی د لوبو کولو لپاره وړوکی ژور ځای.

چروک (čruk) نر.م. چرونکی، پار، د شپې او ورځې له اتمې برخې سره برابر د اوبو وېش.

چره (čará) ښځ.م (ج. چرې) ۱) ساچمه؛ ۲) د پالېز جويه؛ ۳) پټی په وړو برخو وېشل؛ ٤) هغه لېږي اوبه چې له سيند څخه راجلا او ترلېږي فاصلې بېرته له سيند سره يو ځای شي.

**چرهار** (č(u,a)rahā́r) نر.م. د مرغیو گڼ اواز.

**چرې** (čaré) ض. و گ. چېرې.

**چری** (čarə́y) ښځ.م. ۱) ژېړ آلو، کوک سلطان؛ ۲) کوچنی ډېګ چې چوشکی ولري؛ ۳) ویاله؛ ۴) یوډول اغزن بوټی؛ ۵) یوډول بخاری ده چې پرېږ اوبو اودان او د پخلي ځای لري.

**چرېدار** (čaredā́r) نر.م. چرې لرونکی، چره ییز توپک، ښکاري توپک.

**چرېدل** (č(a,u)redə́l) مص.ل. چونېدل، چغېدل.

**چریک** (čirík) نر.م. پارتیزان، سرباز.

**چرېکار** (čarekā́r) نر.م. ۱) بزگر؛ ۲) نوکر؛ ۳) شریک؛ ٤) دخولې دلاندنۍ شونډې وېښته.

**چریکي**(۱) (čirikí) ص.نب پارتیزاني، په چریک پورې اړوند.

**چریکی**(۲) (čarikáy) نر.م. ورغومی، کچي کی، سېرلی، سېرلکی، مرغومی.

**چړ** (čaṛ) نر.م. ۱) دروېزه، خیر تولونه؛ ۲) د باران تېزه شېبه؛ ۳) مخ ځوړی؛ ٤) سېلاب راوړې خاورې او شګې؛ ۵) د سېلاب لاره؛ ٦) قتل عام؛ ۷) د مندانو دمنځ غټ لرگی.

**چړا** (čaṛá) نر.م. ص. کم عقله سړی؛ ۳) گونګ؛ ٤) دبنګړیوالو یو قوم دی.

**چړاخ** (čaṛáx) نر.م. لوی زخم، ژور پرهار.

**چړاخول** (čaṛāxawə́l) مص. مت. زخم لویول، پرهار لویول، پیاوور سترول.

**چړاخېدل** (čaṛāxedə́l) مص. ل. زخمي کېدل، پرهار ژلی کېدل، چړاخ کېدل.

**چړانګو** (čaṛāngú) نر.م. د هندوانو، بادرنګو او نورو تانګونه اوجلغونه (ځېلانګې).

**چړاو** (čaṛā́w) نر.م. چړ، تولوژنه، دلوژنه، له ځېړمې او له یوه سره وژل.

**چړاوه** (čaṛāwá) ښځ.م. چکاوه، زېم، هغه اوبه چې دکارېز اوبند ترتړلو وروسته لږې لږې ترې راځي.

**چړاوی** (čaṛāwáy) نر.م. و گ چړاوی.

**چړپ** (čṛap) نر.م. ۱) شړپ، د اوبو د توېدو اواز؛ ۲) د شونډو د یو ځای کېدو اواز.

**چړپن** (čṛapán) ص. نر.م. ۱) اپلتي وېونکی؛ ۲) چړوېدونکی او شړپېدونکی لوښی.

**چړپول** (čṛapawə́l) مص. مت. ۱) چړپل، په ځ شي شونډې شړپول؛ ۲) داوبو د ډک لوښي ښورول؛ ٤) تاواني کول، زیانمنول.

**چړپهار** (čṛapahā́r) نر.م. شړپهار، شړپی، چړپی، د چړپ چړپ اواز.

**چړپی** (čṛapáy) نر.م. ۱) شړپی؛ ۲) چړپا.

**چړپېدل** (čṛapedə́l) مص. ل. ۱) شړپېدل، په ځ شي شونډې شړپېدل؛ ۲) تاواني کېدل، زیانمنېدل ۳) جړپېدل، مایعات ښورېدل.

**چړت پړت** (čṛatpṛat) ص. نر.م. ۱) غوړېږ، د بر غوړ؛ ۲) هېڅ نه وېل، غړ نه کونه.

**چړتون** (čaṛtū́n) نر.م. تېکی، د توري پوښ، د چړې پوښ، غلاف، تکه.

**چړچکه** (čaṛčaká) ښځ.م. ۱) ماله، د شودیارې ماله؛ ۲) چکې، چک چک، تاکې، چاکې.

**چړچکې** (čaṛčake) ښځ.م. لاس تکونه، تاړی، چک چکې، چکې، تاکې وهنه. ۱

**چړچوبک** (čaṛčubák) ص. نر.م. چړچوبن، اوبلن، اوبرن، نری.

**چړچوبه** (čaṛčobá) ښځ.م. کورت او غوږي.

**چړچوبۍ** (čaṛčobə́y) ښځ.م. چمچوبۍ، لمبل ځای، جرچوبۍ، تشناب، غسل خانه، باس.

**چړچه** (čaṛčá) ښځ.م. چړچه، عیش او عشرت، مېلې کول، چړچې، مزې چړچې.

**چړچې وهل** ( čarčewahə́l ) مص.ل. مزې کول، مېلې کول، چړچې کول، زیات مصرف کول.

**چړچیي** ( čarčayí ) ص. نـر.م. ښځ.م. چـړچې، عیاش، مېلې کوونکی، چړچناک.

**چړغه** ( čarğá ) ښځ.م. چښنکې، چوری، هغه تېره تیږه چې شپانه‌خېل شاروي په حلالوي.

**چړق** ( čraq ) نر.م. ۱) چړک، د اوبو د توېېدلو اواز؛ ۲) شرق، تېز او تند باران.

**چړک** ( črak ) نـر.م. ۱) د لـرگي د ماتېـدو اواز؛ ۲) د دروازې تمبه، د دروازې اړم.

**چړکانی** ( čarkā́nay ) نر.م. برجی، ببلو، اسونی، مسخوره، هغه کانی چې چـاکـو، چاړه او نور شیان په تېره کوي.

**چړکاو** ( čarkā́w ) نـر.م. چنـگاو، د اوبـو پونه، اوپاشي، د اوبو شنل، چرتېل.

**چړکاوول** ( čarkāwawə́l ) مـص. مـت. پونل، اوپاشي کول، د اوبو شنل، د اوبو شیندل.

**چړکه**[۱] ( čraká ) ښځ.م. ۱) څړیکه، ځانگه، درد، سوز؛ ۲) ځلېدنه، ځلا، برېښېدنه.

**چړکه**[۲] ( čarká ) ښځ.م ۱) یو ډول خړ رنگې مرغۍ ده؛ ۲) مج. بې همته او ناراسته سړی.

**چړکی**[۱] ( čurkáy ) ښځ.م. چوړکی، چاړه، چوړکی، چاړوکی، وړه چاړه.

**چړکی**[۲] ( čarkáy ) نر.م. چاکو، چاقو.

**چړگی** ( čargáy ) نـر.م. د سیند هغه مالوړه ځـای چې کاڼي ولږي او لږې اوبه پکې بهېږي.

**چړنگ** ( črang ) نر.م. ۱) جرنگ، شرنگ؛ ۲) له لوړه ځایه د لږو اوبو د توېېدو اواز.

**چړو** ( čarū́ ) نـر.م. و گ. چړکه[۱]؛ ۲) ص.نر.م. ناراسته او بې همته سړی؛ ۳) دروېزگر، چړگر، خیرغوښتونکی.

**چړوبن** ( čaṛobán ) ص. نر.م. ج. اوبلن، اوبرن.

**چړوبی** ( čaṛobáy ) نـر.م. ۱) څـړوبی؛ ۲) پرچون خرڅونه؛ ۳) چړووی، رنگرېز.

**چړوتوب** ( čarūtób ) نر.م. بې همتي، پستي.

**چړوس** ( čarū́s ) ص. نر.م. بې همته، خروس.

**چړوکی** ( čarūkáy ) ښځ.م. چاړه، چاړوگی.

**چړول** ( čarawə́l ) مـص.مـت. ۱) پاشـل، اوبـه لوستل، اوبه نوستل؛ ۲) پر دستو کول، بیَول، له نسه کول، اسهالول.

**چړونگ** ( črūng ) نر.م. ۱) د چنرگـوړي چینگ چنگ؛ ۲) د چنچنو اواز.

**چړونگول** ( črungawə́l ) مـص. مت. سـیوول، چنگول، کوچنی چرگوړی په اواز راوستل.

**چړونگی** ( črungáy ) نر.م. لږې اوبه، تکې اوبه.

**چړونگېدل** ( črungedə́l ) مص.ل. چینگـېدل، سیوېدل، چنېدل

**چړونه** ( čaṛawə́na ) ښځ.م. ۱) اوبه پاشـنه، اوبه لوستنه، اوبه نوستنه؛ ۲) بیونه، په دستو کونه، د نسه کونه، عمل وروستنه.

**چړووی** ( čaṛuwáy ) نر.م. چړوبی، څړوبی.

**چړوی** ( čaṛawáy ) نر.م. رنگرېز، ننگرېز.

**چړه** ( čará ) ښځ.م. ۱) د دروازې چـوړ؛ ۲) تېلم، ترازه، ترتې، چنده، د هندوانې دړه.

**چړه** ( čará ) ښځ.م. چاړه، چوړکی، چاړه.

**چړهار** ( čurahā́r ) نر.م. شړهار، شرپهار.

**چړي** ( čaṛí ) نر.م. چنی، طالب، د جـومـات خادم، توک توونکی.

**چړیا** ( čaryā́ ) ص. نب. اختـه، بوخـت، مشغـول، لگیا، مصروف، لاس پر کار.

**چړیاگر** ( čaryāgár ) نـر.م. ژوبڼ، باغ وحش؛ د شارویو، ځناورو، مرغانواو... د ساتلو ځای.

**چړیاو** (čaṛyā́w) نر.م. د ځېلي د بند هغه سر چې لهسکک (غربي) سره تړل کېږي.

**چړیتوب** (čaṛitób) نر.م. ۱) دروېږه توب، دروېږه کول، توک تولونه؛ ۲) طالبي.

**چړېدل** (čaṛedə́l) مص.ل. ۱) چړچړ کول، شړېدل ۲) په دستو کېدل، دستونه کول.

**چړېس** (čaṛés) ص. نر.م. ناپاک، خوسا (سړی).

**چزول** (č(a,i)zawə́l) جزول، سره کول، په غورو یا تېلو کې سره کول.

**چزېدل** (čazedə́l) مص. ل. جېزېدل، وریتېدل، په غورو یا تېلو کې سره کېدل.

**چسپ** (časp) ص. نر.م.ج. برابر، سم، درست.

**چسپان** (časpā́n) ص. نر.م. ۱) چست، چالاک، ۲) تنگ او چسپ کالي.

**چسپانده** (časpā́ndə) ص. نر.م. تکړه، چابک، اوچت، چست، چالاک، فعال.

**چسپناک** (časpnā́k) ص. نر.م.ج. سرېښناک، سرېښن لرونکی.

**چسپول** (časpawə́l) مص.مت. سرېښول، نښلول، نصبول، نصب کول.

**چسپېدل** (časpedə́l) مص. ل. سرېښېدل، نښلېدل، نصبېدل، نصب کېدل.

**چست** (čust) ص. نر.م. اوچت، چابک، چالاک، تکړه.

**چستي** (čustí) ښځ.م. اوچتي، چابکي، چالاکي.

**چستی** (čústay) نر.م. وگ. چوستی.

**چشپک** (čišpák) نر.م. د پوستین توټه، د پوستکي ورینه توټه.

**چشپېره** (čašperá) ښځ.م. پېره کې، بولاني.

**چشت** (čist) ند. د هوا د فشار، د یو چا د متوجه کولو، چوپولو په وخت کې ځانگړی اواز.

**چشتی** (čaštáy) ښځ.م. ۱) برغي، برنغ، دغښې او نس برغي (پرده)؛ ۲) د لسرې توپي، د لسرې هزار خانه، سل پاتي.

**چشم بندي** (čišmbandí) ښځ.م. ۱) نیرنگ، شعبده، حقه بازي؛ ۲) د جادوگرۍ په چلونو سره د شیانو بل ډول ښودنه، سترگبندي.

**چشمې** (čašmé) ښځ.م. عینکې، چشمکې.

**چشی** (čaší) نر.م. یو ډول ازغن بوټی دی.

**چښاک** (čaṣā́k) نر.م. څښنه، څښاک، چښنه.

**چښتن** (č(i,a)ṣtə́n) نر.م. وگ. څښتن.

**چښچه** (čaṣča) ښځ.م. پرخچه، دړه، توټی.

**چښکوری** (čaṣkū́ray) نر.م. چوښتي، چوښکه، چوښکی، د کوزې، چاینکې او ... هغه برخه چې اوبه ترې راتویېږي

**چښکی** (čuṣkáy) نر.م. چوسی، ذکر، د سړي تناسلي آلت.

**چښل** (čṣə́l) مص. مت. څښل، چښښل.

**چښنوکی** (čəṣnū́kay) نر.م. ۱) چاگل، گوډی، کوچنی مشک؛ ۲) یو ډول وړه مشکوله.

**چښنه** (čṣə́na) ښځ.م. چښنگ، څښنه..

**چښوبی** (čṣobáy) نر.م. شربت، مشروب.

**چښول** (časawə́l) مص. مت. اوبه ور کول، اوبول، په اوبو مړول، خړوبول.

**چښونکې** (čṣū́nke) ښځ.م. چښنوکی، د شپنو مشکوله ډوله مشک چې غاړې ته یې اچوي.

**چښی** (čuṣáy) نر.م. سپل اغزی، وړوکی اغزن بوټی دی.

**چغ** (čáğ) نر.م. ۱) د مرغۍ آواز؛ ۲) کانې، هغه پرده چې د بانس له نریو لرگیو څخه جوړېږي؛ ۳) شور، ځوږ؛ ٤) د مرغانو د نیولو جال؛ ٥) غبیج، د وړو یوه لونه ده؛ ٦) اوړد.

چغا (čaǧā́) ښځ.م. چغار، شور، ځوږ، چغاره.

چغاته (čaǧātá) ښځ.م. د لرګي اس.

چغاغه (čaǧāǧá) ښځ.م. يو ډول تريو خونډه بوټی دی.

چغال (čaǧā́l) نر.م. شغال، سورلنډی.

چغال غار (čaǧālǧā́r) نر.م. د کوچنيانو يو ډول لوبه ده.

چغالکی (čaǧālkáy) نر.م. چغښکی، دسترګې هغه کونج چې د پزې خواته وي.

چغالي (čaǧālí) ص. نب. ۱) خالي ميدان؛ ۲) خسک زردالو.

چغالي ور (čaǧāliwár) نر.م. د باغ وړه دروازه.

چغانغه (čaǧāngá) ښځ.م. نانا، پودينه، وېلنی.

چغانه (čaǧāná) ښځ.م. سرينده، سارنګی، سارنګا؛ د موسيقۍ يوه آله ده او د رباب په ډول پښتني سازګڼل کېږي.

چغانی (č(u,a)ǧānáy) نر.م. د زنې کوتی، زنخدان؛ د زنې ژور او ورننوتی ځای.

چغاول (čaǧāwál) نر.م. ۱) يو ډول پسول دی چې ښځې يې پر غاړه کوي؛ ۲) د باز او بانېې او نورو غاړکی يا د غاړې بند.

چغ بغ (čaǧbaǧ) نر.م. شور، ځوږ، غالمغال.

چغ بوز (čaǧbúz) نر.م. چغبوز، د ملخ په شېر يوه خزنده ده.

چغتار (čaǧtā́r) نر.م. د فقيرانو او ملنګانو چلتار.

چغته (čaǧtá) ښځ.م. يو ډول هيلۍ ده.

چغټ (čaǧáṭ) ص. نر.م. چټل، ناولی، ناپاک.

چغ چغ (č(i,a)ǧ) نر.م. شور، ځوږ، چغ چوغ.

چغچی (čaǧčáy) ښځ.م. و.ګ. چغزی.

چغر (čaǧár) ص. نر.م. ج. ۱) کوږ سترګی؛ ۲) ږد سترګی، بټې راوتلې سترګې، چپ سترګی.

چغرکه (čaǧaraká) ښځ.م. چغرۍ، يو ډول سپېره بوټی دی.

چغرو (čaǧrū́) نر.م. کونګ، غټ کونګ، يو ډول مرغه دی چې د شپې الوځي.

چغړبه (čaǧṛabá) ښځ.م. ۱) شور، ځوږ، غوغا؛ ۲) دباو، په قهرجن اواز سره تهديدونه.

چغړکه (čaǧṛaká) ښځ.م. پټيرچکه، چکله، هغه اوړه چې نه خميره وي او نه پټير.

چغړی (čaǧṛáy) ص. نر.م ۱) چغزي، مغز لرونکی؛ ۲) نازک.

چغزی (čaǧzáy) ښځ.م. چغچی، د بادام مغز، د غوز مغز.

چغزي (čaǧzí) ص. نب. ۱) جغجی، کاغذي بادام يا غوز، ګوک؛ ۲) معتمد، امين، صادق.

چغ سترګی (čaǧstárgáy) ص. نر.م. ۱) کوږ سترګی، چوغ سترګی؛ ۲) بټ سترګی.

چغشکي (čǧaškí) نر.ج. د کوچنيانو ټغې.

چغکی (čaǧakáy) نر.م. ۱) د مرغانو شور؛ ۲) د کوچنيانو شور ماشور.

چغل[1] (čuǧə́l) ص. نر.م. ۱) چغلګر، چوغلګر، چوغلمار، چغلباز؛ ۲) چغل، غلبېل.

چغل[2] (č(i,a,u)ǧə́l) غټ سوري لرونکی غلبېل.

چغل بازي (č(i,a)ǧəlbāzí) ښځ.م. تر کوزدې وروسته د نجلۍ د پلار کره د هلک او نجلۍ خاصه ليدنه کتنه.

چغل خور (čoǧulxór) ص. نر.م. چغل، چغلګر، چغلګير، چوغلمار، چغلمار، چغلباز.

چغله (čaǧlá) ښځ.م. د يوه شي د اوږدوالي او پسور اندازه.

چغلي (čuǧlí) ښځ.م. چغل خوري، چغله، چوغله، شيطاني، چغلګوزي.

**چغ ماچغ** (čaǧmāčáǧ) نر.م. ۱) غنجل باز، غنجلی، يو ډول لوبه ده؛ ۲) د لرګي آس.

**چغمټ** (čaǧmáṭ) ص. نر.م. ۱) غټ، شورب؛ ۲) څوک چې د سترګو سپين يې زيات وي.

**چغمټين** (čaǧmaṭán) ص. نر.م. ۱) و ګ. چغمټ؛ ۲) کلک، سخت؛ ۳) لانجه مار، جنجالي.

**چغمټه** (čaǧmaṭá) ښځ.م. کلکه پټيره ډوډۍ.

**چغمغی ټوپک** (čaǧmaǧayṭopák) نر.م. چقماقي ټوپک، سخوړ ټوپک.

**چغندر** (čuǧandár) نر.م. ج. لبلبو، چقندر.

**چغنه** (čaǧána) ښځ.م. ګانۍ.

**چغنی**[1] (čaǧanáy) نر.م. د اوبو يو ډول مرغه دی چې د زانې په څېر اوږده غاړه لري.

**چغنی**[2] (čuǧanáy) نر.م. حلاجي، الاجي، هغه آله چې پنبه او پنبه دانه سره جلا کوي.

**چغ و پغ** (čaǧopaǧ) نر.م. شور ماشور، څوړ.

**چکچکه** (čikčiká) ښځ.م. ۱) پنۍ، ستاره، دانۍ ۲) د دوارو لاسو پړکول.

**چکو** (čáku) نر.م. چاجۍ، وروکی لاس، کوچنی لاس، د کوچنيانو په ژبه لاس ته وايي.

**چکوتره** (čakotará) ښځ.م. د لېمو د کورنۍ يو ډول مېوه ده.

**چکو چکو** (čkočkó) نر.م. چکوړی چکوړی، د واړه خوسکي د رابللو اواز.

**چکور**[1] (čakū́r) ص. نر.م. چالاک، تېز.

**چکور**[2] (čakór) نر.م. مو. له ۳۸ ماترو څخه جوړ د يوه تال نوم.

**چکوړ** (čəkóṛ) نر.م. ۱) چکوړه، چکوړې؛ د خوسکي د شړلو اواز؛ ۲) خوسکی.

**چکوړی** (čakoṛáy) نر.م. ۱) خوسی، خوسکی؛ ۲) سکوړې، د خوسکي د شړلو اواز.

**چکه** (čaká) ښځ.م. ۱) له شړومبو او مستو چې اوبه بېلې شي پاتې برخې ته چکه وايي؛ ۲) نر.م. شپېره؛ ۳) فرېب؛ ٤) اچه، د وزې د شړلو اواز؛ ۵) تجربه لرونکی غل؛ ٦) يو اغزن بوټی دی.

**چکه چور** (čakačū́r) ص. نر.م. ۱) بدمعاش، اوباش؛ ۲) سخت، کنجوس؛ ۳) غل، تګ.

**چکه دانه** (čakakdāná) ښځ.م. يو بوټی دی چې سرې وړې دانې نيسي.

**چکې** (čaké) ښځ.م. ۱) لاس ټکونه، چک چکې، لاس پړکونه؛ ۲) د وزې لپاره اواز.

**چکی** (čakáy) ښځ.م. کلچه، د کلچې په ډول - يوه چکۍ صابون؛ ۲) د اوبو غوړ غوړی؛ ۳) ګيچی، مغز؛ ٤) جينۍ؛ ۵) ککوړی، ګرده ډوډۍ؛ ٦) د برقي او د بزلي ژرندې پل؛ ۷) ص. ښايسته؛ ۸) چاغ، په غوښو ډک.

**چکيده** (čakidá) ښځ.م. ۱) د مستو او شلومبو چکه؛ ۲) څڅېدلې ډوډۍ.

**چکی سری** (čakaysáray) ښځ.م. کونتۍ، امسا، بينت، غونډ سرې امسا.

**چګ** (čag) ص. نر.م. ج. و ګ. جګ.

**چګټ** (čagaṭ) نر.م. پوندانه، پنبه دانه، چګت.

**چګس** (čagás) نر.م. ۱) هغه لرګی چې باز او باښه ورباندې کښېني؛ ۳) هغه دوه لرګي چې ګوډ شخص تر تخرګ لاندې نيسي او باندې ګرځي.

**چګون** (čagón) نر.م. د چنار په څېر يوه ونه ده.

**چل** (čal) نر.م ۱) تګي؛ ۲) اسره، تمه؛ ۳) طريقه؛ ٤) د ښمني؛ ۵) د ګيډې کور؛ ٦) سلوک؛ ۷) د ژرندې ټکټکی؛ ۸) وار، څل؛ ۹) د برقي يا د بزلي ژرندې ماشين؛ ۱۰) ق. جاري، چالو.

**چلاچل** (čalāčál) نر.م. ۱) تګ راتګ، تلل راتلل د سفر تياري؛ ۲) پرله پسې، مسلسل.

**چلاو** [1] (čaláw) نر.م. ۱) گوزاره، چلبدنه، گذران ۲) له کاریز څخه د ختې ایستلو رسۍ.

**چلاو** [2] (čaláw) نر.م. و.گ. چلو.

**چلاو صاف** (čəlawsā́f) نر.م. صافي، چلو صاف، سوري سوري لرونکی لوښی.

**چلباز** (čalbā́z) ص. نر.م. چلي، تګ، تګمار.

**چلپټی** (čalpaṭáy) نر.م. چل، غوړی.

**چلتار** (čiltā́r) نر.م. چالتار، زرین یا د سونډي تارو څخه جوړ شوی مزی دی چې عربان، ملنګان یې پر خپل سر باندې د سره دسمال د پاسه تړي.

**چلچل** (čalčál) نر.م. ۱) چلاچل؛ ۲) بیړه، تلوار.

**چلخی** (čalxáy) نر.م. شلخی، یو ډول سابه دي.

**چلر** (čulár) ص. نر.م. ۱) ساده، ناپوه، کم عقل؛ ۲) لوچک، اوباش، بدمعاش.

**چلښت** (čalaṣ̌t) نر.م. ۱) گذاره، چلاو، چلند؛ ۲) جاري کېدنه؛ ۳) رواج موندنه کرنسي.

**چلغوزی** (čalǧozáy) نر.م. و.گ. جنغوزی.

**چلغه** (čalǧa) ښځ.م. اندازه، د اوږدوالي او پسور.

**چلغت** (čəlǧát) نر.م. زغره، زره.

**چلک** (čilák) نر.م. ۱) تیم، پیپ؛ ۲) شیردانی.

**چلکه** (čalaká) ښځ.م. د اوبو څپه، چپه، موج.

**چلگری** (čalgáray) فا. نر.م. دوړ، تغر جوړوونکی هغه څوک چې تغر اوبي.

**چلگری** (čalgəráy) ص. نر.م. چلولي، چلباز.

**چللو** (čalaláw) نر.م. ۱) چلبلو، د ژرندې تکتکی، د ژرندې ډگ ډگی.

**چلم** (čilám) نر.م. ۱) چیلم، د تنباکو څکلو د خاورو یا مسو څخه جوړه یوه آله ده چې اوبه په کې اچول کېږي؛ ۲) زانه، زانې؛ ۳) چلم، حقه.

**چلمار** (čalmā́r) ص. درغلگر، درغلکار، تګمار، جعلکار.

**چلمچي** (čilamčay(i)) نر. ښځ.م. لاس لوني، لگن، لاس پرمینځونی.

**چلمرده** (čilmardá) ښځ.م. د ریشکي غوندې یو بوټی دی چې د سوځولو کار ترې اخلي.

**چلم کښ** (čilamkáṣ̌) ص. نر.م. چلمي، چلم څکوونکی، د چلم عملي.

**چل مل** (čalmál) نر.م. چل ول، چم، تګي بر گي، غولونه، فریب، چل، چل بازي، تېر ایستنه.

**چلن** (čalán) نر.م. ۱) چلند، خوی، سلوک؛ ۲) تله راتله؛ ۳) په معامله کې د اعتبار وړ؛ ۴) طرز.

**چلنج** (čilínj) نر.م. ۱) مبارزې ته راغوښتل، رقابت کونه؛ ۲) اعتراض کونه، ادعا کونه؛ ۳) متهمونه؛ ۴) مطالبه؛ ۵) حق. غوښتنه.

**چلندبېلگه** (čalandbélga) ا. د چال چلند ماډل، د چلند دود.

**چلندچوپړ** (čalandčopáṛ) ا. ترانسپورتي خدمت، نقلیه خدمت.

**چلنددوی** (čalanddóy) ا. روان قانون، نافذ قانون.

**چلندغوټه** (čalandǧúṭa) ښځ.م. ول، هغه غوټه چې په اسانۍ سره خلاصېږي.

**چلندوالی** (čalandwā́lay) نر.م. جاري کېدنه، رواج موندنه، چلښت، دود موندنه.

**چلندول** (čalandawə́l) مص. مت. رواج ورکول، جاري کول، رواجول.

**چلنده لار** (čalandalā́r) ښځ.م. عامه لاره، جاري لاره، پاچاهي لاره، چالانه لاره.

**چلندي** (čalandí) ص. نب. جاري شوی، رواج شوی، رواجي، مروج، دود شوی.

**چلندېدل** (čalandedə́l) مص. ل. چلند کېدل، چلېدل، رواجېدل، جاري کېدل.

**چلني** (čalaní) ښځ.م. ۱) چالانېدنه، چلېدنه، جاري کېدنه؛ ۲) د چالانېدو ټکس.

**چلو** (čaláw) نر.م. (ج. چلوونه) چلاو؛ هغه وريجې چې سپينې پخې شي يعنې رنګ ورنکړل شي.

**چلوټه** (ča'waṭá) ښځ.م. (ج. چلوټې) ۱) ګذاره، سلوک، راشه درشه؛ ۲) چل، غولونه.

**چلوچاڼ** (čalawčā́ṇ) ا. وريجوچاڼوونی، چلوصاف.

**چل ول** (čalwál) نر.م. چل، مکر، فريب، ټګي.

**چلول** (čalawə́l) مص.مت ۱) رواجول، جاري کول ۲) حرکت ورکول؛ ۳) استعمالول؛ ٤) ګذاره کول؛ ٥) بدکاري کول؛ ٦) اداره کول، کنټرول کول؛ ۷) بهول، بوتلل، بوول.

**چلولي** (čalwalí) ص.نب. چلباز، ټګ، چمباز.

**چلولی** (čalawálay) فا.نر.م. ۱) جاري کړی، رواج ورکړی؛ ۲) چالان کړی؛ ۳) باړونه کړی؛ ٥) استعمال کړی.

**چلومبه** (člumbá) ښځ.م. مچلوغزه، مچنوغزه، مچوغنه، مچنوغه، مچوغنده.

**چلون** (čalū́n) نر.م. ګذاره، رفتار، چلښت، چلند.

**چله**[1] (čalá) ښځ.م. ۱) د نارينه غوړوالی؛ ۲) څپه؛ ۳) سېلاب، توپان؛ ٤) ګذاره، وخت تېري.

**چله**[2] (čıla) ښځ.م. ۱) خلوت، څهله، د عبادت لپاره څلوېښت ورځې په خلوت کې کېناستنه؛ ۲) د کوزدې ګوتمه؛ ۳) د ژمي څو مياشتې.

**چلي** (čali) ص.نر.م. و.ګ. چلباز.

**چلی**[1] (čaláy) ص.نر.م. ۱) کمزوری، ضعيف؛ ۲) هغه تېره لرګی چې ګازرې پرې راباسي.

**چلۍ** (čaláy) ښځ.م. ۱) وښکالي، ګونګوری، وړۍ؛ ۲) د نارينه ويوډول ګوتمې؛ ۳) د پنې (وچنې) پوزه او مخکنۍ څوکه.

**چلی**[2] (čaláy) نر.م. بنګړی.

**چليپا** (čalipā́) ښځ.م. ۱) د ضرب علامه (x)؛ ۲) د نفې، رد څرګندولو علامه، ناسم.

**چلېدل** (čaledə́l) مص. مت. ۱) جاري کېدل؛ ۲) ماشين روانېدل؛ ۳) پرله پسې ډزې کېدل؛ ٤) استعمالېدل؛ ٥) تلل؛ ٦) ګوزاره کېدل.

**چلېکار** (čalekā́r) ص. نر.م. و.ګ. چرېکار.

**چليګر** (čaligár) ص. نر.م. و.ګ. چلباز.

**چم** (čam) نر.م. ۱) محله، کوڅه؛ ۲) دوکه، چل؛ ۳) پونه، شبنم؛ ٤) د ټګ ډول؛ ٥) غونډې، په څېر؛ ٦) طريقه؛ ۷) سلوک؛ ۸) برخه، څانګه، ۹) ختې چې لږ کېل ولري؛ ۱۰) کرج، پېنډه؛ ۱۱) د غوښې يوه ټوټه؛ ۱۲) وابنه او وېښته چې په خپل منځ کې نښتي او تاو شوي وي.

**چماچار** (čamāčā́r) نر.م. چرچوری، چنجارې.

**چمانده** (čamāndá) ښځ.م. سپېر کونډکه، سپېرلکه خړه مرغۍ، سو پوټکه.

**چمباز** (čambā́z) ص.نر.م. چلباز، ټګ، فرېبګر.

**چمبر** (čambár) نر.م. ۱) چنبر، د کلا چاردېوالي؛ ۲) چمبه، د پروېزې او چنووني حلقه.

**چمبړ** (čambáṛ) نر.م. رنګينه خمتا، ګلداره بيتي.

**چمبړخيال** (čambaṛxyā́l) نر.م. ۱) تره، ترې؛ ۲) لاسپلی، ترې ته ورته؛ خو تور رنګه او وړه پلی دی چې په يوناني درملنه کې کارېږي.

**چمبړی** (čəmbaṛáy) نر.م. خيګ، شناز، د لامبو مشک، سنداري.

**چمبل** (čambál) نر.م. پېچک، کوله ولی، يوډول ژېړ تارونه دي چې په نباتاتو او ونو راتاوېږي.

**چمبول** (čəmból) نر.م ۱) کوړ لوښی، چپت لوښی؛ ۲) د کوچنيانو يوه لوبه ده.

**چمبه** (čambá) ښځ.م ۱) پنجه، څپېړه؛ ۲) تمبل، دف، دريه؛ ۳) د توپۍ يا خولۍ غاړه.

**چمبه کښه** (čambakáṣa) ښځ.م. پنجه کښه، دستکۍ؛ د تناره یو ډول اوږده ډوډۍ ده.

**چمبی** (čambáy) نر.م. ۱) د غاړې گروه، د گروېې هډوکی؛ ۲) چمبر، چاردېوالي، کلا.

**چمبړک** (čamberák) نر.م. د ماښام چکالی، د ماښام ځکلکی، چرمي شمبرک.

**چمبړه** (čamberá) ښځ.م. چوسی، چشی، د تناسلي آلت هغه پوستکیٔ چې د سنت کېدو پر وخت ځنې پرې کېږي.

**چمبېل** (čambél) نر.م. چمبېلي، یو ډول خوشبویه گل دی چې ژېړ او سپین گلان کوي.

**چمتاره** (čamtārá) ښځ.. مو. یو ډول سرنده ده.

**چمتو** (čamtū́) ص.نب. تیار، اماده او تکړه.

**چمتووالی** (čamtūwā́lay) نر.م. تیاري، امادگي، اماده توب.

**چمته** (čəmtá) ښځ.م. ۱) دبه، کلپی، د باروتو ایښودلو لوښی؛ ۲) تیلی، کڅوړه، میانۍ؛ ۳) د فقیرانو طبراق.

**چمتی** (čamtáy) نر.م. متی، سری، دستنې برغولی، هغه پلن لرگی چې د ستنې او بش تر منځ وي.

**چمته** (čəmtá) ښځ.م. ۱) دسپنه؛ ۲) اوړلړونی.

**چمجن** (čamján) ص. نر.م. ۱) چینجن، چینجي وهلی؛ ۲) وروست، پوده، خوسا، توس.

**چمجی** (čamjáy) نر.م. . و.گ. چینجی.

**چمچ** (čamač) نر.م. چمچه، څمڅه، چمچی.

**چمچالو** (čamčā́lū) نر.م. چمچه لغزی، یو ډول مرغی ده چې په اوبو کې گرځي.

**چمچړی** (čamčaráy) ښځ.م. شوړ شوړی، سرسری داور لوبې اوږد شی.

**چمچک** (čamčák) نر.م. تلی، د موسیقۍ آله ده.

**چمچکی** (čamčakáy) ښځ.م. کربوری، مارخوری.

**چمچلغی** (čamčalğáy) نر.م. د اوبو یو ډول مرغی ده چې چینجي خوري یې.

**چمچلی** (čamčaláy) نر.م. ۱) چرخولک، گډوونی، څرخندوکی؛ ۲) بانه گیر؛ ۳) بازینگر هلک.

**چمچمار** (čamčamā́r) نر.م. کپچه مار.

**چمچوری** (čamčū́ray) نر.م. تمبلوټ، ډولچه، ډولی، اوگردان.

**چمچورۍ** (čamčūráy) ښځ.م ۱) چمچی، چمچه، وروکې څمڅی؛ ۲) څمڅکی، د چونگښې زمنگی.

**چمچه** (čamčá) ښځ.م. و.گ. څمڅی.

**چمړدی** (čamardáy) نر.م. د شولود پایکو د منځ تیرکی، هغه لرگي سر چې شولې تکوي.

**چمړه** (čamrá) ښځ.م. ۱) څرمن، چرم؛ ۲) توته، توکړ؛ له بل شي څخه رابېل شوی غټه توته.

**چمغټ** (čamğát) نر.م. چنغړک، ممغړک، غرندی، چینغړک.

**چمغړک** (čamgərák) نر.م. ۱) مری، د مری هډوکی؛ ۲) چنغړک، چینغړک.

**چمک** (čamák) نر.م. ځلا، بربښ، ځلېدنه.

**چمکار** (čamakā́r) ص.نر.م. ځلاند، ځلېدونکی، بربښېدونکی، چمکدار، چرکېدونکی.

**چمکلي** (čamkalí) ښځ.م. د ښځو یوه گانه ده.

**چمکنی** (čamkanáy) ښځ.م. زري پڼې، هغه موچنې یا پڼې چې پر مخ یې زر تار او وربښم کار شوي وي.

**چم گاونډ** (čamgāwánd) نر. م. ۱) همسایگي، گاونډیتوب؛ ۲) همسایه، گاونډي.

**چمگر** (čamgár) ص. نر.م. ج. تګ، چلباز.

**چمن** (čamán) نر.م. (ج. چمنونه) هغه اوار میدان چې وابښه او کبل په کې راشنه وي.

**چمنډ** (čamánḍ) ص. نر.م. چاغ، شلند، مزی.

**چمني** (čamaní) ص. نب. د چمن، د چمن اړوند.

**چموخم** (čamoxám) نر.م. ۱) موزون تګ، په ناز تلنه، برابره تلنه؛ ۲) چم، چل، تګي.

**چموسه** (čamosá) ښځ.م. سوګلې، د خامې یا اومې ځرمنې بوټ یا پنه.

**چموکی** (čam ūkáy) ص. نر.م. چمباز، تګ.

**چمه** (čamá) ښځ.م. ۱) بدخویه ښځه؛ ۲) ډبره، کاڼی، تیږه، غرمه.

**چمیار** (čamyā́r) نر.م. موچي، څمیار.

**چمیکی** (čamíkay) نر.م. چرګوړی، چرګوتی.

**چنار** (činā́r) نر.م. چینار، ځنار، یو ډول ونه ده.

**چناو** (čanā́w) نر.م. د اوبو سر، د اوبو سرچې په ویاله کې راځي.

**چنباګل** (čanbāgwál) نر.م. یو ډول سپین او ژیړ رنګی ګل دی.

**چنبر** (čanbár) نر.م. و ګ. چمبی.

**چنج** (čunj) نر.م. کرکه، نفرت.

**چنجړۍ** (čanjaráy) ښځ.م. زرکه، یو ډول مرغۍ ده

**چنجړی** (čanjáray) نر.م. تنزری، ځنزری.

**چنجن** (činján) ص. نر.م. ۱) چینجن، چینجو وهلی؛ ۲) مضر، جنجالي.

**چنجنتوب** (činjantób) نر.م. ۱) چنجنتیا، خوسا توب، چینجنوالی؛ ۲) په خبره کې خبره پیدا کول، د مچ نه کوچ ویستل.

**چنجنول** (činjanawál) مص. مت. ۱) چینجول، په چینجو وهل؛ ۲) مج. په خبره کې خبره پیدا کول، خبره خرابول.

**چنجنه ډبره** (činjanaḍabará) ښځ.م. یو ډول سوری سوری کاڼی دی چې اوبه کوغوندې یوه ماده ځنې راڅڅیږي.

**چنجنېدل** (činjanedə́l) مص. ل. ۱) چنجن کېدل، چینجنېدل؛ ۲) مج. د کومې موضوع یا خبرې اوږدېدل او خرابېدل.

**چنجوغی** (činjuǧáy) نر.م. یوه میوه ده چې سور رنګ لري او خوند یې خوږ وي

**چنجول** (čunjawə́l) مص. مت. کرکه کول، نفرت پیدا کول، زړه توروول.

**چنجولی** (čunjawə́lay) مف. نر.م. زړه ورتور کړی، متنفر کړی.

**چنجوی** (čanjúy) نر.م. درې غابښیزه آله ده چې کوچیان پتیره ډوډۍ پرې میده کوي.

**چنجی** (činjáy) نر.م. چینجی، یو ډول حشره ده.

**چنجېدل** (čunjedə́l) مص. ل. زړه توریدل، خوا ګرځېدل، کرکه او نفرت پیدا کېدل

**چنچڼۍ** (čənčəṇə́y) ښځ.م. یو ډول مرغۍ ده.

**چنډرچېری** (čandarčeré) نر.م. د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**چندخ** (čindáx) نر.م. غټه چونګښه، چنګښ.

**چندرکونس** (čandarkáwns) نر.م. مو. یو کونس دی مګر په شاسترا او پخوانیو متونو کې نه لیدل کېږي.

**چندرو** (۱) (čandrú) نر.م. پرخه، پونی، شبنم.

**چندرو** (۲) (čindró) ښځ.م. ۱) چیتی، جُزبازي، د کوچنیانو یوه لوبه ده؛ ۲) په یوه پښه تلنه.

**چندروکی** (čandrū́kay) نر.م. چتکی، چتی، چترکی، چورندک، یوه وړه مرغۍ ده.

**چندرۍ** (čindrə́y) ښځ.م. ۱) چندرو، په یوه پښه ګوډ ګوډ تلنه؛ ۲) موښی، چندر، چیتی.

**چندری** (čandráy) نر.م. د ښځې تناسلي آلت.

**چندړ** (čandár) نر.م. صندل، چندڼ، یو ډول ونه ده چې خوشبویه لرګی لري.

چندل (čandál) نر.م. گوډ گوډ تلونکی، پر یوه پښه تلونکی، پر چړندی تلونکی.
چندنۍ (čandnáy) ښځ.م. ۱) سبینه روجایي؛ ۲) ترنګ، شرنګ (درباب)، د ډول ډب.
چندڼ هار (čandanhā́r) نر.م. چندنهار، چندنار، امیل غوندې یو ډول ګاڼه ده چې غاړې ته اچول کېږي او یو لاس ترې ښکته ځوړند وي.
چندوری (candúray) نر.م. کودوری، توکر، کودنی، کودری، کودی.
چندوله (čandolá) ښځ.م. و ګ. جینۍ.
چندونۍ (čandūnáy) نر.م. د غوړو پخکی، د غوړو نرمی، د غوړو نرمه، د غوړو پوځکی.
چنده (čandá) ښځ.م (ج.چندې) ۱) چانده، بسپنه، هغه پیسې چې د یوه کار لپاره له خلکو څخه راټولېږي؛ ۲) د ورځپاڼې، مجلې کلنی یا شپږ میاشتنی ګډون.
چندی (čánday) نر.م. (ج. چندیان) شاعر.
چنډال (čandā́l) ص. نر.م. ۱) چوړی، چواړی، صفایي کوونکی؛ ۲) غریب؛ ۳) بې همته؛ ٤) له ټولو حقوقو څخه محروم؛ ٥) بې اولاده؛ ٦) بې روزګاره.
چنډالتوب (čandāltób) نر.م. ۱) چوړی توب؛ ۲) غریبي؛ ۳) بې همتي؛ ٤) بېکاري؛ ٥) محرومیت؛ ٦) اولاد نه لرنه.
چنډاول (čandawə́l) نر.م. چنداول، د لښکر هغه ټولۍ چې تر ټولو وروسته وي.
چنډت (čandát) ص. نر.م. خوار غریب، مفلس.
چنډخه (čindaxá) ښځ.م. چینګښه، جنګښه.
چنډک (čandák) نر.م. ۱) شنډک، غوک، د کوچنیانو یو راز لوبه ده؛ ۲) ټکره.
چنډن (čandán) نر.م. و ګ. چنډر.

چنډو (čandū́) نر.م. غمزه، چانډو، اوبو کې پاخه شوی تریاک یا اپیم چې بیا وڅکول شي.
چنډوباز (čandūbā́z) ص.نر.م. دچنډو نشه کوونکی
چنډوکه (čandūká) ښځ.م. یو ډول بوټی دی.
چنډه (čandá) ښځ.م. (ج. چنډې) ۱) توکر، ټوټه، حصه، توکره؛ ۲) ترازه، قاش، دره.
چنغاله (čingālá) ښځ.م. چنغله، کوزده شوې.
چنغړک (čangarák) نر.م کارکورتک، قانقورتک.
چنغول (čangól) نر.م. (ج. چنغاله) نامزاد.
چنګ (čang) نر.م. ۱) د فوکلوري موسیقۍ یوه اوسپنیزه آله ده چې منځنۍ برخه یې فنري جوړښت لري؛ ۲) د موسیقۍ ۲٤ تاریزه آله ده؛ ۳) له ٤۰ ماترو څخه جوړ د یوه تال نوم دی؛ ٤) چنګک؛ ٥) په پنجه کې، ګیر.
چنګاښ (ču,angáṣ) نر.م. چونګاښ، کونیکبر، خارچنګ، سرطان.
چنګال (cangā́l) نر.م. منګول، منګوله، پنجه.
چنګ چنګ (čəngčíng) نر.م. چونګ چونګ، ستمی، زګېروی.
چنګ په چنګ (čangpačáng) ص. نر.م. ج. ګډوډ، پرېشان، ابتر.
چنګړ (čəngár) ص.نر.م (ج. چنګړان) ۱) بدخویه، بدمعامله؛ ۲) موسلی، مسلی.
چنګړی (čangaráy) نر.م. چینډری، چنګور، چنډرو، چیتی، د کوچنیانو یوه لوبه ده.
چنګښ (čəngaṣ) نر.م. ۱) چونګاښ، چینګښ، غټ چنډخ؛ ۲) چټکی، چټی، چټرو، چنډولی؛ ۳) و ګ. چنګاښ.
چنګل (čangúl) نر.م. د څمکې هغه ټوټه چې د پنځلسو جریبو سره معادله وي.
چنګل بازی (čəngulbāzáy) ښځ.م. چغل بازي.

**چنګن** (čəngán) ص. نر.م. ۱) ژړندوکی، ژړ په ژړا کېدونکی؛ ۲) ترن؛ ۳) بخیل، شوم.

**چنګو** (čangú) نر.م. یو ډول سارانی مرغه دی.

**چنګوټی** (čangóṭay) نر.م. ۱) چنګوړی؛ ۲) دځناور بچی؛ ۳) ووړکی ماشوم.

**چنګوری** (čangúray) نر.م. ترټنی، دډبرې ټوټه، د تیږې ټوټه، د بم ټوټه یا پارچه.

**چنګوړ** (čangóṛ) نر.م. چندری، چیتې، موښې، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**چنګوړي** (čanguṛí) نر.م. د شولو ګېډۍ، د شولو ختی، د شولو څښتې.

**چنګول** (čingawə́l) مص. مت. وګ. چینګول.

**چنګولي** (čangulí) ښځ.م. د غنمو ګېډۍ، د غنمو ختی، د غنمو سترې.

**چنګۍ** (čangə́y) ښځ.م. ۱) چندری؛ ۲) یو ډول وړه سپېره چنچنه ده.

**چنګی** (čəngáy) ص. نر.م. چغر، بهنګی، بهنګا، کوږسترګی، چغر سترګی.

**چنګیتاز** (čangitáz) نر.م. ۱) کوښښ، لپ څپ؛ ۲) ملخ غوندې یوه حشره ده.

**چنګېدل** (čingedə́l) مص. ل. ژړل، د ژړا اواز.

**چنماری** (čanmārə́y) ښځ.م. وګ. چاندماري.

**چنوسکی** (čanū́skay) ص. نر.م. بخیل، کنجوس

**چنوغزه** (čanoγzá) ښځ.م. مچلوغزه، مچنوغزه.

**چنه** (čəná) ښځ.م. ۱) د دېوال یو اړخ؛ ۲) مرسته؛ ۳) مج. د ګاونډي په ډول له بل چا سره ژوند تېرول؛ ٤) د پلوروونکي سره د بیې د کښته راوستلو لپاره خبرې؛ ۵) د خولې لاندنی ژامه.

**چنی** (čənáy) نر.م. ۱) هغه آس چې درې رنګه لري؛ ۲) کاسه، ټوټی، کونډی.

**چنۍ** (čanə́y) ښځ.م. شبنم، زمرین، سپینه پرخه.

**چڼ**[1] (čaṇ) نر.م. ۱) ګوړ، للون، خېشاوه؛ ۲) ص. پاک، چاڼ؛ ۳) هغه لښتې چې د کوټې د تیرانو د پاسه اچول کېږي؛ ٤) پنبه په نداف وهنه؛ ۵) انتخاب؛ ٦) فیلترونه؛ ۷) بې غشه کونه.

**چڼاخه** (čaṇáxa) ښځ.م. د هډوکو درد، د بندونو درد، د اندامونو درد، روماتیزم.

**چڼاسک** (čaṇāsák) ص. نر.م. چنیاسن، چڼاسن، هغه څه چې پوپنک او چنیاسې یې کړې وي.

**چڼاسکه** (čaṇāská) ښځ.م. ۱) یو بوټی دی چې ګل یې د بنفشې ګل ته ورته دی؛ ۲) چڼاسه، چنیاسه، چڼوسی، پوپنک.

**چڼاشي** (čaṇāší) نر.م. کروپی، کګړی، بوګړی.

**چڼ چڼ** (čəṇčə́ṇ) نر.م. د چرچڼې (چڼچڼې) اواز.

**چڼچڼ** (čənčə́n) نر.م. چرچڼ، یو ډول مرغی ده.

**چڼچڼک** (čəṇčəṇak) نر.م. تورغاړ، یوه مرغۍ ده چې توره غاړه لري.

**چڼچڼه** (čəṇčəṇá) ښځ.م. وګ. چرچڼه.

**چڼکاو** (čaṇkā́w) نر.م. چړکاو، اوړپاشي، د اوبو پړوهل، څمکه اوپاشي کول.

**چڼکاوول** (čaṇkāwawə́l) مص. مت. اوپاشي، د اوبو پړوهل، چڼکاو کول، اوبه ترمکه کول

**چڼکاوېدل** (čaṇkāwedə́l) مص. ل. چړکاوېدل، چړقاوېدل، اوبه ترمه کېدل، اوپاشي کېدل.

**چڼل** (čaṇə́l) مص. مت. ۱) چونل، چڼ کول، صافول، غلبېلول؛ ۲) تولول، سره کول.

**چڼول** (čaṇawə́l) مص. مت. ۱) ګوړول، خېشاوه کول؛ ۲) پاکول، چاڼ کول؛ ۳) مالوچ ډنډت کول؛ ٤) چوڼ کول، انتخابول.

**چڼونی** (čaṇunáy) نر.م. ۱) پروېزی، چڼوونی؛ ۲) چاڼ کوونی، پاکوونی، غلبېلوونی.

**چڼه** (čaṇá) ښځ.م. نخود، یو ډول حبوب دی.

چنۍ (čanə́y) ښځ.م. د اوسپنې پانه.

چڼۍ (čaṇáy) نر.م. ۱) د جال وړه توکری؛ ۲) درې گوټیزه واړه سورې؛ ۳) چړې، طالب؛ ٤) دڅپليو غړوندی، د پښو غړوندی.

چڼیا (čuṇyā́) ښځ.م. چونیا، چونیایي رنگ؛ بنفشه یي رنگ.

چڼیاتوب (čuṇyātób) نر.م. چونیایي رنگ، چونیایي رنگ درلودنه.

چنیاسن (čanyāsán) ص. نر.م. چنوسی، هغه څه چې پوینک یې کړی وي.

چڼیاسه (čaṇyāsá) ښځ.م. یو ډول نری توکر، یو ډول چنجره نری کپړه.

چڼېدل (čaṇedə́l) مص. ل. ۱) گوڼېدل؛ ۲) صفا کېدل، غلبېلېدل؛ ۳) مالوچ ډنډت کېدل؛ ٤) انتخابېدل؛ ۵) چونېدل، چاڼ کېدل.

چو[1] (čaw) نر.م. ۱) چاک، چاود، درز؛ ۲) ددوو غرونو ترمنځ تنگه لاره.

چو[2] (ču) نر.م. ۱) چف، دم؛ ۲) د آس یا غوایي دروانولو اواز.

چو[3] (čō) اد. ۱) خود، لیکن، مگر؛ ۲) خې اوبس، چو اوبس؛ ٤) بندېز، ایسارتیا، گیروالی.

چوار (čawā́r) نر.م. للونه، څوړند، کوری.

چوارول (čawārawə́l) مص. مت. څړول، للول، کوری کول، څوړندول.

چواره (čuwārá) ښځ.م. (ج. چوارې) خرما، وچه کجوره؛ یو ډول مېوه ده.

چواري (čuwārí) ښځ.م. سوری شوې کجوره ده چې په تارکې اچول کېږي او د ښتلو لپاره یې د ماشوم پر غاړه کې څوړندوي.

چوارېدل (čawāredə́l) مص.ل. څوړندېدل، څړېدل، للېدل، کوری کېدل.

چواړی (čuwāṛáy) ص.نر.م. ۱) ملی، موسلی، ټورمخی؛ ۲) خاکروب؛ ۳) خوسا، ناپاک.

چوباره (čobārá) ښځ.م. (ج. چوبارې) بالاخانه، د کوټې د پاسه بله کوټه.

چوبړن (čobṛán) ص.نر.م. لوڅک، جاهل، چوړن.

چوپ (čup) ص.نر.م. ج. چپ، غلی، خاموش.

چوپاتکه (čopātə́ka) ښځ.م. (ج. چوپاتکې) کتولی، د انځړو د راټولولو آله.

چوپار (čopā́r) نر.م. (ج. چوپارونه) ۱) چوپال، چوپاړ، څېرې، ساله؛ ۲) د غونډېدو ځای.

چوپان گرمک (čopāngarmák) نر.م. یوه ځنگلي بوټي دی.

چوپتیا (čoptyā́) ښځ.م. غلی توب، چوپتوب، چوپوالی.

چوپټه (čupṭá) ښځ.م. هغه لرگي چې د دېوال د کلکولو لپاره په هره پخڅه لگول کېږي.

چوپر (čupár) ص. نر.م. برگ، دوه رنگی، ابلق.

چوپړ (č(o,u)páṛ) نر.م. ۱) خدمت، نوکري، کار، زحمت؛ ۲) یو ډول لوبه.

چوپړن (čupṛán) ص.نر.م. چخن، چوخړن، چخړن، هغه څوک چې سترگې یې چخړې او اوښکې کوي.

چوپړوال (čopaṛwā́l) نر.م. خدمتگار، نوکر.

چوپړه (čopáṛa) ښځ.م. زړه پنه، زړه موچنه، چیړه.

چوپړی (čopṛáy) نر.م. خدمتگار، خادم، نوکر.

چوپړۍ (čopṛə́y) ښځ.م. ۱) اوېړی، شړومبی، چوبړی؛ ۲) خونکی، څپر، کوتخه، څپره.

چوپل (čupə́l) مص. مت. چوپول، زېښېښل، رودل.

چوپلی (čupə́lay) مف. نر.م. زېښېښلی، رودلی، چپولی، چوپولی.

چوپنه (čupə́na) ښځ.م. زېښېښنه، رودنه.

**چوپنی** (čupanay) نر.م. پوچکه، دصابون پوچک یا د کورتو منبوني، کښکرۍ.

**چوپونکی** (čupū́nkay) فا. نـر.م. زبیښونکی، رودونکی، چپوونکی.

**چوپنۍ** (čupanə́y) نـر.م. هغه پوست شی چې د ماشوم د غابښو په کېدلو کې مرسته کوي.

**چوپنۍ** (čupanə́y) ښځ.م. چاکلېټ.

**چوپه چوپیا** (čopačopyā́) ښځ.م. کراره کراري، چوپه چوپتیا.

**چوپېدل** (čupedə́l) مص. ل. ارامېدل، کرارېدل، غلي کېدل، خاموشه کېدل.

**چوپېر** (čawpér) ق. و ګ. چاپېر.

**چوت** (čwat) ص. نر.م. ۱) اوچت، لـوړ؛ ۲) تېز، څالاکه، متی، وندی.

**چوتاله** (čawtāla) نر.م. مو. ددوولسو ماترو تال.

**چوتانګی** (čutangə́y) ښـځ.م. د اوبو د کـښتۍ فلزي کړۍ، د اوبو د زین فلزي کړۍ.

**چوتار** (čawtā́r) نر.م. (ج. چـوتاره) ۱) یـو ډول ساز؛ ۲) اوږده خبره؛ ۳) چارسوتي توکر.

**چوتره** (ču(wa)trá) ښځ.م. صوفه، سوپه، ډبه.

**چوتی** (č(o,u)táy) نر.م. ۱) چوتی، نیکر، لنډکی پرتوګ؛ ۲) د اوبو د بار تړلو رسۍ.

**چوتیا** (čutyā́) ص. ښځ.م. ۱) بې اتبـاره، ناکاره؛ ۲) ګانډو، مفعول.

**چوتیاتوب** (čutyātób) نـر.م. ۱) ناکاره توب، بې اتباري؛ ۲) ګانډوتوب، مفعولتوب.

**چوټ** (čut) نر.م. (ج. چـوټونه) ۱) چیـټ، یو ډول توکر دی؛ ۲) اندېښنه؛ ۳) تاوان؛ ٤) ګـوزار؛ ٥) اعتراض؛ ٥) ص. نر.م. بس، پوره.

**چوټ انداز** (čotandā́z) ص. نر.م. قیاس، اټکل اندازه، تخمین، اټکلي، توکلي.

**چوټول** (čotawə́l) مص. مت. ۱) چوټ کول، وول، تنبتول؛ ۲) غلاکول؛ ۳) درنول (د پور).

**چوټه**[1] (čóta) ښـځ.م. ۱) چـاره، علاج؛ ۲) پـرله پسې کارکونه.

**چوټه**[2] (čawaṭá) ښځ.م. څپلۍ، کېږۍ، چپلۍ.

**چوټې** (čoṭí) ص. نب. ۱) څټي، چوټي، د ښځې د سر وېښتـان چې اوبدلي یې وي؛ ۲) ښځ.م. د ښځې دسر اوږده څڼې؛ ۳) رخصتي.

**چوټېدل** (čoṭedə́l) مـص. ل. ۱) پوره کېدل، په مقابله کې برابرېدل؛ ۲) تنبتول کېدل؛ ۳) بارېدل، درنېدل (د پور).

**چوچ** (čoč) نر.م. رسم، رواج، دود، دستور.

**چوچاړی** (čočāṛáy) نر.م. تاپو، جزیره.

**چوچک** (čučák) نر.م. ۱) چـرګوتی، چرګـوړی؛ ۲) ورانکاري هلک، شوخ هلک.

**چوچنی** (čočanáy) نر.م. و ګ. چوخنی.

**چوچوړی** (čučuṛáy) نر.م. شینی، شونی، کونی، د مرغیو او چرګانو کنه.

**چوچوڼی** (čučuṇáy) نر.م. چرګوړی، چرګوتی.

**چوچی** (čučáy) نر.م. ۱) چوچونی، چیچی، بچی؛ ۲) ص. نر.م. چوخـړن، چخن، هغه سړی چې سترګې یې چوخنې کوي.

**چوچۍ** (čučə́y) ښځ.م. سارایي چرګ، کورمنګ.

**چوخ**[1] (čox) ص. نر.م. کړوپ، مـلاتیټی، کوږ.

**چوخ**[2] (čux) نر.م. چخ، تومبنه، خښبونه، منډنه.

**چوخت** (čoxt) ص. نر.م. جوخت، پیوست، ورغېږمه.

**چوخته** (čóxta) ښځ.م. ۱) ګاره، سمڅـه، سمڅ؛ ۲) ډوغله، غار، سوړه.

**چوخړکه** (čuxṛáka) ښځ.م. سـپېنګور، یو ډول اغزن بوټی دی.

**چوخړن** (čuxṛán) ص. نر.م. چخړن، چیخن، چخی.

**چوخره** (čuxṛá) ښځ.م. و گ. چخره.

**چوخړي** (čuxṛí) نر.ج. چخې، چخړې، چوخنې.

**چوخښکی** (čuxṣkáy) نر.م. د سترګې هغه کونج چې د غوږ و خواته دی.

**چوخکه** (čoxáka) ښځ.م. چخله، چوخله، چوکه.

**چوخل** (čuxál) نر.م. چوغل، سیکي، یخ مالک، د یخ مالک آله، چوغل، ښورینده آله.

**چوخلی** (čuxaláy) ښځ.م. جگه خولۍ (توپۍ).

**چوخلی** (čuxaláy) نر.م. تېره لرګی دی چې جوار وریاندې سپینوي.

**چوخ مخی** (čoxmáxay) ص.نر.م. چک مخی، برګ مخی، چیچکي.

**چوخنی** (čuxnay) ص.نر.م. و گ. چوچی.

**چوخنه** (čuxná) ښځ.م. و گ. چخره.

**چوخنی** (čuxnáy) نر.م. چخری، چوخری.

**چوخول**(۱) (čuxawál) مص.مت. چوخ کول، چوکه کول، دخیل، سوخول، سوغول.

**چوخول**(۲) (čoxawál) مص.مت. کږول، راتیټول، کږول.

**چوخه** (čoxá) ښځ.م. ۱) چوغه، شوقه، قبا؛ پشمي چینه؛ ۲) کوږوالی، خموالی؛ ۳) د څه شیز د اخیستلو لپاره اوږه ورکونه.

**چوخی** (čuxáy) ښځ.م. چوکه، چیکه، تېره لښته دچې د غوایانو د شړلو لپاره استعمالېږي.

**چوخی** (čuxáy) ص.نر.م. ۱) شاتیټ، شاکوږی؛ ۲) چیچکي، چخمخی، چوخی، چخن مخی.

**چوخي چوخي** (čuxičuxí) ص.نب. داغ داغ، تپ تپ، خاپ خاپ.

**چوخېدل**(۱) (čoxedál) مص.ل. تیټېدل، کږوېدل.

**چوخېدل**(۲) (čuxedál) مص.ل. چوکه کېدل، سوخېدل، څوخېدل، سوغېدل.

**چودل** (č(aw,u)dál) مص.ل. و گ. چاودل.

**چودري** (čawdarí) ص.نر.م. ۱) مشر، سرکرده؛ ۲) معتبر؛ ۳) زمیندار.

**چور** (čūr) ص.نر.م. ۱) تالا، لوټ؛ ۲) ریزمریز، توټې توټې؛ ۳) بالکل، بېخي؛ ٤) نر.م. تان، لوټمار؛ ٥) هغه سوری چې د اوبو په بند کې پیدا شي؛ ٦) چوری، چڼکي، تېره تیږه ده چې شپانه د چړې کار ترې اخلي؛ ۷) دره؛ ۸) دوړه، پوډر، رش.

**چورباز** (čūrbā́z) ص.نر.م. بچه باز.

**چوربل** (čurbál) نر.م. ۱) چربل، د وزې له وژغنو څخه جوړ شوی ترسهری یا پړی؛ ۲) له وژغنو او تارونو څخه جوړ د آس جلو.

**چوربور** (čorbór) ص.نر.م. مغرور، کاکه.

**چورت** (čurt) نر.م. ۱) چرت، فکر، اندېښنه؛ ۲) یوه خوله نسوار.

**چورتک** (čurták) نر.م. یو ډول نبات دی.

**چورتي** (čurtí) ص.نب. اندېښمن، پریشان.

**چورټ** (čuraṭ) نر.م. چرټ، یو ډول سګرېټ دي.

**چورچورک** (čūrčūrák) نر.م. چرچرک، کیرړی؛ یو ډول حشره ده

**چوررنګ** (čūrṛáng) ص.نر.م. نری، چپلیت.

**چورلټ** (čūrláṭ) ق. بالکل، بېخي، سکټ، سراسر.

**چورلک** (čūrlák) نر.م. څرخ، پیر، تاو، دوړ.

**چورلکه** (čūrláka) ښځ.م. ۱) د پنې پڅکی (مخکنۍ برخه) او پسکی (وروستنۍ برخه)؛ ۲) دلرګي څرخ؛ ۳) څرخي الوتله، هیلیکوپتر.

**چورلکی** (čūrlúkay) نر.م. ۱) چورلکه، د پنې چورلکه؛ ۲) د ښځې د تناسلي آلت خینجکی.

**چورلنده** (čūrlánda) ص.نب. ګرځېدونکی، سیار، څرخېدونکی، تاوېدونکی.

**چورلندی** (čurlandáy) نر.م. لاټو، گرځندی، چورلنډی، څرخندوکی، د لوبې یوه آله ده.

**چورلول** (čurlawә́l) مص.مت ۱) څرخول، تاوول، دوروركول؛ ۲) گډول، نڅول.

**چورله** (čūrlá) ښځ.م. ۱) داوبو سورې، د اوبو ورخ؛ ۲) سولولی غوز (اکوړ).

**چورلی** (čūrláy) نر.م. (ج. چورلي) ۱) دماشين څرخ؛ ۲) څرخندوکی، لاټو، څرخنی، چورلنډی ۳) غوز، متک، اکوړ.

**چورلی** (čūrlә́y) ښځ.م. شپېلک، شپېلۍ.

**چورليځ** (čūrlīź) ا. محور، منځنی، غونډ کرښې، څرخ ليکه، آسه، ميل څرخ، مدار.

**چورلېځی** (čūrleźáy) نر.م. ميل، محوري ميل، هغه ميل چې ماشين باندې څرخي.

**چورلېدل** (čūrledә́l) مص.ل. ۱) څرخ خوړل، تاوېدل، څرخېدل؛ ۲) گډېدل، نڅېدل.

**چورلی غرب** (čūrlayǧráb) نر.م. ماشينگڼ، ماشيندار، يو ډول وسله ده.

**چورمچور** (čūrmačū́r) ص.نر.م. ريز مريز، زرې زرې، ټوټې ټوټې، بېخي مات.

**چورن** (čūrán) نر.م. ۱) تنزرکی، د اوبو سورې؛ ۲) کپه، کپ، تاک؛ يو خوراک ميده دارو.

**چورندک** (čūrandák) نر.م. (ج. چورندکان) چتکی، چتی، چترکی، کوچنی مرغی ده.

**چورنگ** (čūráng) نر.م. ۱) په يوه وار د ښاروبو ښېښې پرې کونه؛ ۲) تېغ، توره؛ ۳) زخم، پرهار.

**چورنگی** (čūrangáy) نر.م. يو ډول مرز دی.

**چوره** (č(o,u)rá) ص.نب. ۱) فتق، هغه سړی چې د خوټو د پاړسوب په ناروغی اخته وي؛ ۲) ص. نر.م. چوری، خوفناکه دره؛ ۳) ښځ.م. بوره، شکره؛ ٤) پوډر، رش.

**چوړی** (۱) (čawṛә́y) ښځ.م. مچ شړونی.

**چوړی** (۲) (čorә́y) ښځ.م. ۱) ښکلې جينۍ؛ ۲) محبوبا، معشوقه؛ ۳) پ. ک. مجلسې پېغله، هغه پېغله چې مجلس تودوي.

**چوري** (čurí) ښځ.م. ماليده، يو ډول خواږه دي.

**چوری** (čūráy) نر.م ۱) توبنه؛ ۲) توبره؛ ۳) ذکر، د نارينه تناسلي آله؛ ۲) گډېدونکی.

**چوړ** (۱) (čūṛ) نر.م. ۱) شرپهار؛ د اوبو د راتوېېدلو اواز؛ ۲) هغه درز چې په لرگي کې په څولې يا پانه باندې شوی وي؛ ٤) کړی، غوراشه.

**چوړ** (۲) (čawṛ) نر.م. ۱) ښخ، جړ، چنډر، قتل؛ ۲) ص. نر.م. ج. تباه، برباد.

**چوړا** (čūṛā́) نر.م. وښی، بنگړی، گوجره، چوړی.

**چوړاغ** (čūṛā́ǧ) نر.م. د کانې چاو، د اوبو لاره.

**چوړچوړک** (čuṛčuṛák) نر.م. کمکی هلک، ورکی ماشوم، وركوټی، کوچنی.

**چوړک** (čūṛák) نر.م ۱) قلف، کولپ؛ ۲) د دروازې اړم، تمبه او توماچو.

**چوړکی** (č(o,u)ṛkáy) ښځ.م. چوړکی، وره چاره.

**چوړگه** (čūṛgá) ښځ.م. ۱) سمڅ، اوږده سوړه؛ ۲) دروازه يو څه خلاص.

**چوړو** (čū́ṛū) نر.م. تبخک، شپېلدو، چوړی، يو ډول سپېره مرغه دی چې اوږده لکۍ لري.

**چوړول** (۱) (čawṛawә́l) مص.مت. تباه کول، بربادول، ورانول، قتلول، پوپنا کول.

**چوړول** (۲) (čūṛawә́l!) مص. مت ۱) شوړول، چړول؛ ۲) بېول، جاري کول.

**چوړهار** (čūṛahā́r) نر.م. شورهار، شرپهار.

**چوړی** (۱) (čūṛáy) ص.نر.م. ۱) چووړی، بنگي؛ ۲) هغه سړی چې د پانسي کولو پر وخت کې د کوهي څرخ تاووي؛ ۳) و گ. چوړو.

**چوړېدل**[1] (čawṛedә́l) مص. ل. تباه کېدل، بربادېدل، ورانېدل، پوپنا کېدل، قتلېدل.

**چوړېدل**[2] (čuṛedә́l) مص. ل. ۱) چړېدل؛ ۲) جاري کېدل، بهېدل.

**چوړېل** (čuṛayә́l) مص. مت. سرېښول، نښلول.

**چوړېلی** (čūṛayә́lay) مف. نر. م. سرېښ کړی، نښلولی، منښلولی، ښخ کړی.

**چوړینه** (čuṛayә́na) ښځ. م. سرېښونه، منښلونه.

**چوز** (čūz) نر. م. یو کلن باز.

**چوزه**[1] (čū́za) ښځ. م. ښایسته ښځه.

**چوزه**[2] (čawzá) ښځ. م. چرگوړی، چرگوټی.

**چوزی** (čū́zay) ص. نر. م. ۱) کاغذي، چغجي، نازک، چغزي؛ ۲) نر. م. چرگوړی؛ ۳) دوزي ببړی.

**چوس** (čūs) ص. نر. م. ۱) بې ارزښته، بې قیمته شی؛ ۲) د څاروي لري او کولمې؛ ۳) ص. چوسک، خسیس سړی.

**چوسار** (čawsā́r) نر. م. یو ډول سوهان.

**چوستی** (čūstáy) نر. م ۱) دځناور لری او کولمې؛ ۲) د نس برنغ یا پرده.

**چوس خور** (čūsxór) ص. نر. م. ۱) چوسکن، بخیل؛ ۲) وړ سترگی، اروا وړی.

**چوسک** (čūsák) نر. م. چوس، ، په یوه شي پسې گرځېدنه، په یوه شي پسې پلټنه

**چوسکن** (čūskán) ص. نر. م. و گ. چوس خور.

**چوسکنتوب** (čūskantób) نر. م. ۱) وړ سترگی ۲) بخل، بخیلتوب، شوموالی.

**چوسکنېدل** (čuskanedә́l) مص. ل. اروا وړی کېدل، بخیل کېدل، شوم کېدل.

**چوسه** (cósa) ښځ. م. سستي، لټي، تنبلي.

**چوشۍ** (cošә́y) ښځ. م. و گ. چښکی.

**چوشک** (cošák) نر. م. ۱) ښیښه یي وړ بوتل دی چې شیدې په کې اچوي او کوچنی یې روي؛ ۲) وړ پلاستیکي ساختمان چې هوا لري او ماشومان یې روي.

**چوښتی** (čū́ṣtay) نر. م. ۱) چوشتی، دمېږو او نورو څارویو غولانځه؛ ۲) ښوبښکوری.

**چوښکه** (čū́ṣka) ښځ. م. چوښکی، څخکوری، چښکوری، سنت، کشکول، ښوښکوری.

**چوغ** (čūğ) ص. نر. م. ۱) چوخ، کوږ، تیټ، کوږ ک، چوغی؛ ۲) تنگ.

**چوغالی** (čūğā́lay) نر. م. ۱) د اوښانو د تړلو ځای او تویله؛ ۲) د اوښانو پچې چې پر یوه ځای یې کړې وي؛ ۳) دورستو اوبو ډوغل.

**چوغبوغ** (čūğbū́ğ) نر. م. چغ بغ، شور ځوږ.

**چوغړی** (čū́ğray) ص. نر. م. غوړېدلی، ویړ، سپړلی، سپړولی، سپېړلی.

**چوغ سترگی** (čūğstárgay) ص. نر. م. چغ سترگی، چیلغی، چنگ سترگی.

**چوغښکی** (čūğáṣkay) نر. م. د سترگې کونج، د سترگې هغه کونج چې د غوږ خواته وي.

**چوغک** (čūğák) نر. م. یو ډول نبات دی چې سره میوه نیسي او میوې ته یې جنجوغی وایي.

**چوغکه** (č(u,o)ğáka) ښځ. م. چرچنه، مرغی.

**چوغکي** (čuğakí) ښځ. م. چوغلي، غمازي.

**چوغل** (čuğál) نر. م. ۱) چوخل، نخځک، دسکي آله؛ ۲) غماز، چوغلگر؛ ۳) غټ غلبېل.

**چوغلي** (čuğlí) ښځ. م. غمازي، چوغلیگري، چوغلگري، شیطاني، خبره وړنه.

**چوغنه** (čuğә́na) ښځ. م. کوتی، ډوغل، کوت.

**چوغول** (čuğawә́l) مص. مت. تیټول، کوږ کول، کږ کول، کږول، پټول.

چوغه(۱) (cuğá) ښځ.م. قبا، چغه، شوقه، یو ډول چپنه ده.
چوغه(۲) (čoğá) ښځ.م. و.گ. چوخه(۲).
چوغی (coğáy) ص.نر.م. ۱) تیتها، کوپی؛ هغه څوک چې ملا یې تیته وي؛ ۲) چوغ سترگی.
چوغی سترگی (čoğaystárgay) ص.نر.م. وړې او کم دید سترگی
چوغېدل (čūğedál) مص.ل. پتېدل، کوږکېدل، کږکېدل، تیتېدل.
چوف (čuf) نر.م. چف، کوف، دم، دم پو کول.
چوک(۱) (čawk) نر.م. (ج. چوکونه) ۱) چارسو، د څلور لارو د تقاطع ځای؛ ۲) چونگ، حجره، دېره؛ ۳) په طبعیت برابر کار، د زړه کار.
چوک(۲) (čūk) نر.م. ۱) یو سترگی، په یوه سترگه ړوند؛ ۲) پوټی، لړخیز، ذره؛ ۳) کمی، زیان؛ ٤) ببړی، چتره، سولولې شوې ببړی.
چوک(۳) (čok) نر.م. ۱) په گونډو شوی اوښ؛ ۲) خسي شوی اوښ؛ ۳) ض. څوک.
چوک(٤) (čuwák) نر.م. کتی، دمایعاتو داندازه کولو لښتې.
چوکتار (čukatār) نر.م. د چوکې مېخ، هغه مېخ چې په لښته کې کلک شوی او غوايي وریاندې چوکه کوي.
چوک چوک (čukčuk) ص.نر.م. ۱) لړ شان، ذره ذره، لړ لړ؛ ۲) اد. د هغه اواز تلفظ دی چې د ژبې د سر او پورتني تالو ترمنځ د هوا له تېرېدو څخه راوځي چې د زړه سوي، افسوس پر وخت کې ایستل کېږي.
چوکاټ (čawkāt) نر.م. ۱) قالب، دور، فریم؛ ۲) د دروازې هغه برخه چې پلې په کې نصب وي؛ ۳) حدود، محدود، تعین شوي شرایط.

چوکاټي (čawkāṭī) ص.نب. د چوکاټ، چوکاټ ته منسوب، د چوکاټ اړوند.
چوک چوکه (čukčuká) ښځ.م. اوازه، ازانگه.
چوکر(۱) (čokár) ص.نر.م. چاکر، نوکر، چوړ.
چوکر(۲) (čūkár) نر.م. د ځناور خوراک.
چوکره (čokrá) ص.نر.م. ۱) هلک، ماشوم، وړوکی؛ ۲) ساتلی هلک؛ ۳) دبل تابع.
چوکره توب (čokratób) نر.م. هلکتوب، د چوړ باز سړي هلک یا وړکی پاتې کېدل.
چوکړۍ (čūkráy) ښځ.م. چوکړی، چلوړي ساگ، یو ډول سابه دي.
چوکړ (čūkáṛ) ص.نر.م. ۱) ړوند؛ ۲) نوکر.
چوکړه (čūkaṛá) ښځ.م. څوکړه، رنگړی، ړیړه، چوکړه ړیره، تارتار ړیره.
چوک سترگی (čūkstárgay) ص.نر.م. چغر، یو سترگی، کوړ سترگی.
چوکک (čukák) نر.م. هغه لرگي چې په ځمکه کې ښخېږي او دام وروړې ترل کېږي.
چوکل (čukál) مص.مت. چف کول، دمول.
چوکلی (čukálay) مف.نر. چف کړی، دم کړی.
چوکنه (čukána) ښځ.م. چوفونه، دم کونه.
چوکو (čukó) ښځ.م. قمچینه، هغه لښته او نری لرگی چې غوایان پرې وهي او شړي.
چوکول(۱) (čokawál) مص.مت. ۱) پر گونډو کول، خې کول، پېتول؛ ۲) څملول.
چوکول(۲) (čawkawál) مص.مت. ښه کول، برابرول، بهترول، په ذوق برابرول.
چوکول(۳) (čukawál) مص.مت. کېنول، لکول، ښخول، پنیری لگول، بوټي لگول.
چوکه(۱) (čuká) ښځ.م. ۱) چکه، لښته، هغه لرگی چې غوايي وریاندې وهي؛ ۲) تیکه، دهندوانو

دتندي خال؛ ۳) تېروته، نغـرنه، ښکته کونه؛ ٤) لږه اندازه، ذره؛ ٥) لبنته؛ ٦) ملته، ښهۍ ۷) اړکي، لړي، پتېره؛ ۸) چونګي، تاکي.

**چوکه**[۲] (čawká) ښځ.م. دهندوانود خوراک دوکانچه

**چوکۍ**[۱] (čawkáy) ښځ.م. ۱) څـوکۍ، کرسي؛ ۲) څـوکۍ، د پیـره دار ځای، تـانه، مـورچل؛ ۳) زیارت ته تلل؛ ٤) رسمي چوکۍ، مقام.

**چوکۍ**[۲] (čukáy) ښځ.م. دام، بلیره، د بټېرانو یو ډول د نیولو دام.

**چوکی** (čúkay) ص. نر.م. چوک، کم، لږ، ذره.

**چوکي چوکي** (čúkičúki) ص. نر.م. لږ لږ، کم کم، ذره ذره، کم شی.

**چوکیدار** (čawkidā́r) نر.م. څوکیدار، پیره دار، ساتونکی، ژغورونکی.

**چوکېدل**[۱] (čokedә́l) مص. ل. خې کـېدل، اوښ چوکېدل، ښېښېدل، په ګونډو کېدل.

**چوکېدل**[۲] (čawkedә́l) مص. ل. ۱) برابرېدل، ښـه کېدل، په ذوق برابرېدل؛ ۲) روزګار سمېدل.

**چوګان** (čawgā́n) نر.م. پولو، سانګه، نېزه.

**چوګان بازي** (čawgānbāzí) ښځ.م. ۱) دسانګې لوبه، نېزه بازي؛ ۲) ډې بازي، لـو، چمچاکۍ؛ ۳) یو لـوبه ده چې سړي په آس باندې سپرېږي او د لرګي سره توپ وهي.

**چول**[۱] (čol) نر.م. ۱) بیابان، صحرا، بېدیا، میره؛ ۲) ذکر، د نارینه تناسلي آله.

**چول**[۲] (čawә́l) مص. مت. ۱) منفجرول؛ ۲) چاود پکې پیدا کول؛ ۳) اچول، غورځول، تربېل.

**چول**[۳] (čūl) نر.م. د دروازې چوڼ، دوره چوړ.

**چولاوه** (čūlā́wa) ص. نر.م. جل وهلی، څل وهلی.

**چولایي** (čawlāyí) ښځ.م. چلوایي، یو ډول ساګ.

**چولک** (čūlák) نر.م. پېپ، تربرف، لمده واوره.

**چولول** (čolawә́l) مص. مت. خوله خـلاصول، څه ویل، خوله بهرته کول، خوله ویتول.

**چوله** (čolá) ښځ.م. ۱) درز، چـاود؛ ۲) سـوری؛ ۳) کور، مکان؛ ٤) کوڅه؛ ٥) دېره تنګه لاره؛ ٦) د څه ویلو لپاره خوله خلاصونه.

**چولۍ** (čūlә́y) ښځ.م ۱) کمرچینه کمیس، ګونځې کمیس؛ ۲) زوړ دام، شکېدلی دام.

**چولی**[۱] (čawláy) مف. نر.م. ۱) درز کړی، چاود شوی؛ ۲) منفجر کړی، منفلقه شوی.

**چولی**[۲] (čuláy) نر.م. د کوچنیانو د لـوبو غونډ، ګرد او ښوی کاڼی.

**چولیاڼۍ** (čūlyāṇáy) ښځ.م. جـارګی، خندکی، د ډوډۍ پخولو وړه کوټه.

**چوم** (čūm) نر.م. چم، د خاورو یا خټـو یا کبلـو هغه غونډه برخه چې د یوه ښېل سره راجلاشي.

**چومبی** (čūmbáy) نـر.م. ۱) شتومی، د اونګ لاستی؛ ۲) مولی، اوږد او غونډ موند شي.

**چومر** (čūmár) نر.م. ۱) سرمل، هغه کـړۍ چې د اوښ مهار په کې بندېږي؛ ۲) هغه تار یا مـزی چې د اوښ په پزه کې اچول کېږي.

**چومړدی** (čūmaṛdáy) نر.م. چمړدی، د پایکـو منځوی لرګی چې پایکو وربانډې ګرځي.

**چومک** (čūmák) نر.م. شومک، د اوښانو یو ډول نارغي ده چې خوله یې کېږي.

**چومکی** (čūmakáy) نر.م. چمیکی، چرګوری.

**چومل** (čūmә́l) مص. مت. ښکلول، مچو کول.

**چومۍ** (čūmә́y) ښځ.م. مچه، مچو، مچکه.

**چومی** (čūmay) نر.م. د کوچنیانو یو ډول نارغي ده چې له خولې یې لاړې یا ناټې بهېږي.

**چونبېل** (čūnbél) نر.م. لوی او غټ کچکول.

**چونتره** (čontará) ښځ.م. دوکانچه، سوپه، چوتره.

**چونټی** (čunṭáy) ص. نر.م. شـونټیا، چـونډی، یو لاسی، شونټی.

**چونټي** (čūnṭí) ښځ.م. څټي، چوټي، چـوټی، د سر اوږده وېښتان.

**چوندی** (čundáy) نر.م. ګوډی، ګوډګوډک، په یوه پنبه پر لاره تلل، پر چوندې تلل.

**چونکی** (čunkáy) ص. نر.م ۱) بې‌شرمه، بې‌حیا؛ ۲) خوسا؛ ۳) بدعمله؛ ٤) نر.م. سارنګ.

**چونګ**[۱] (čūng) نر.م. ۱) د بر لـړ شـی، د لـپې نیمایي؛ ۲) د چرګـوړي اواز؛ ۳) پټه فیـصله، پټه سلا او مشوره.

**چونګ**[۲] (č(u,ə)wáng) نر.م. و ګ. چونه[۲].

**چونګاوڼ** (čūngāwáṇ) ص. نر.م. چونګن، شور کوونکی، چینګن.

**چونګښه** (čungə́ṣa) ښځ.م. چنګښه،، چنـدخه، ځنډخه، څنګښه، ژونګښه، ځینځښه.

**چونګن** (čūngán) ص. نـر.م. ج. ژړنـدوکی، چونګېدونکی، چینګن، ژړندا.

**چـونګول** (čūngawə́l) مـص. مـت. چینګـول، چنګول، ژړول، په‌ژړا راوستل.

**چونګی** (čūngáy) ص. نر.م. ۱) شـونټی، په یوه لاس شل؛ ۲) نر.م. اندازه پیمـانه؛ ۳) ذره، لږ شی؛ ٤) ګټه، بری.

**چونګي چونګي** (čūngíčūngí) لـږ لږ، لـپه لپه، چاته یو شی په لږه اندازه او پر لاس ورکول.

**چـونګېدل** (čūngedə́l) مــص.ل. چینـګـېدل، ژړېدل، په‌ژړا کېدل، ژړا ته مجبورېدل.

**چونه**[۱] (čoná) ښځ.م ۱) وره، غونډکی او کمزوري نیا (انا)؛ ۲) اهاک، آهک.

**چونه**[۲] (čawə́na) ښځ. م. چونګ، چووونه، درز په کې پیدا کونه، چاودنه.

**چونی** (čūnáy) ص. نـر.م. ښـایستوکی، ښکلی، کوچنی ښایسته شی.

**چونی**[۲] (čūnə́y) ښځ.م. ۱) زره ته‌نیمر، زره‌ته نیمر دې مـاشـوم؛ ۲) چیـني لوښی؛ ۳) لعل، یاقوت، د لعل په‌څېر.

**چونی**[۳] (čawnə́y) ښځ.م. و ګ. چوني.

**چوڼ** (čūṇ) ص. نر.م. ج. ۱) غـوره، ښه؛ ۲) نر.م. کب؛ ۳) چوړ، د دروازې اوکټ چوړ؛ ٤) چاڼ، خوښونه؛ ۵) تېټ اواز؛ ٦) د ویالې سوری؛ ۷) د توپک غوزه؛ ۹) انګېټی؛ ۱۰) د کمیس ګونځې.

**چوڼا** (čūṇā) ښځ.م. و ګ. چوڼهار.

**چوڼ چوڼه** (čūṇčūṇa) ښځ.م. و ګ. چڼچڼه.

**چوڼکی** (čūṇkáy) نـر.م. ۱) د مـرغیـو اواز؛ ۲) د اوبو د بهېدلو اواز.

**چوڼل** (čūṇə́l) مص. مت. ۱) خوښول، غوره کول، ټاکل، په‌ګوته کول؛ ۲) چڼول، چـاڼول؛ صفا کول؛ ۳) چوڼول، جامو ته ګونځې ورکول.

**چوڼول** (čūṇawə́l) مص. مت. ۱) خـوښول، غـوره کول؛ ۲) مرغۍ په اواز راوسـتل؛ ۲) حـرکت کول، ګرځېدل؛ ۳) مایعات شوروول، چړول.

**چوڼوونی** (čūṇawū́nay) نر.م. چاڼ، چاڼوونی، چڼ، چاڼ کوونی، د چڼولو لوښی (آله).

**چوڼهار** (čūṇahā́r) نر.م. چڼهار، د مرغانو چڼهار، د مرغیو د چڼېدو اواز.

**چوڼی** (čūṇáy) نر.م. ۱) بلبل؛ ۳) د کاریز سوری.

**چوڼۍ**[۱] (čūṇə́y) ښځ.م. چانۍ، چڼۍ، پانه.

**چوڼۍ**[۲] (č(aw,o)ṇə́y) ښځ.م. چاونۍ، عسکرې قشله، د عسکرو د اوسېدو ځای.

**چوڼیا** (čūṇyā́) ښځ.م. ۱) بلبل، چوڼۍ؛ ۲) بنفشه یي رنګ.

**چونیاکوکی** (čũṇyākokáy) ښځ.م. د چنبېلو گل، چنبېلي گل.
**چونیاکی** (čũnyākáy) ښځ.م. دبنفشې گل، بنفشه یې رنگ، د بنفشې بوټی.
**چونیانی** (čūṇyānáy) ښځ.م. ۱) په کور کې دننه تشناب، د کورچرچوبی؛ ۲) پخلنځی.
**چونېدل** (čūṇedə́l) مص.ل. ۱) چنېدل، بلبل چغېدل؛ ۲) چورېدل، ځورېدل؛ ۳) چاڼ کېدل، چڼېدل؛ ٤) گونځې گونځې کېدل.
**چوو** (čawū́) نر.م. گردله، هغه باد چې له واورې سره یو ځای وي.
**چوونکی** (čawū́nkay) فا.نر.م. ۱) درز په کې پیداکوونکی؛ ۲) چاودوونکی.
**چوونګړت** (čawūngṛát) نر.م. چندرو، د کوچنیانو یوه لوبه ده.
**چوه** (čawá) ښځ.م. ۱) کجاوه، لویه توکری؛ ۲) یو ډول خوشبویه بوټی؛ ۳) د ډبرې چاود چې اوبه ترې راوځي؛ ٤) هغه شپېله چې نباتات په کې شنه وي؛ ٥) دیچه، جویه؛ ٦) چاک، درز.
**چوهاړی** (čūhāṛáy) ص.نر.م. چوړی، چواړی، چوهړی، ناپاک، مردارخور، گنده.
**چوهړه** (čuhṛá) ښځ.م. گونځه، کوریته، گونجې.
**چوی** (čawə́y) ښځ.م. د وښو توکری، شکری.
**چه** (čá) ښځ.م. سیوری، پټونی، پناه ځای.
**چه** (č(e,i)) اد. چې، د ربط ادات (توری) دی.
**چهر** (čahr) نر.م. یو بوټی دی چې ژېړ گلان لري.
**چې** (če) اد. ۱) د ربط توری دی؛ ۲) ښځ.م. د (چ) توری تلفظ.
**چي** (či) ور. له اسم سره د لاحقې په ډول راځي او صفت جوړوي، لکه: نندارچي.
**چی ایشی** (čayišáy) نر.م. چایجوشه، چایبر.

**چبېر** (čebár) نر.م. کسبگر، کاسب.
**چیت** (čit) ص.نر.م.ج. ۱) چپلیت، چپېر، څپېر؛ ۲) تیټ، تیټه؛ ۳) چخپیت، چیت پیت.
**چیت پیت** (čitpít) ص.نر.م.ج. بنځي چپلیت.
**چیترو** (čitró) ښځ.م. دکوچنیانو دلوبو غونډ کانی.
**چیتره** (čitrá) ښځ.م. گرد کانی دی چې کوچنیان لوبې وربانډې کوي، ړپانکی.
**چیتړه** (čitṛá) ښځ.م. ۱) اوبړن، نرم، اوبلن شی؛ ۲) ډنگره غوښه؛ ۳) پوده او څیرې کالي.
**چیتوالی** (čitwā́lay) نر.م. چخپیتوالی.
**چیتول** (čitawə́l) مص.مت. چت پټول، چپلتول، څخپیتول، چپېرتول، پلنول.
**چیټه** (čéṭa) ض. چرته، چېرې، کوم پلو.
**چیتی** (čitə́y) ښځ.م. ۱) ړپانکی، د کوچنیانو د لوبو تیږه؛ ۲) موښی؛ د یوې لوبې نوم.
**چیتېدل** (čitedə́l) مص.ل. ۱) چپلیتېدل، پلنېدل، اوارېدل، تکېدل؛ ۳) ماتېدل.
**چیټ** (čiṭ) نر.م. یو ډول گلداره توکر دی.
**چیټاکی** (čiṭākáy) ښځ.م. و.گ. چټاک.
**چیټه** (čeṭá) ښځ.م. ۱) تاکید، ټینگه؛ ۲) تاوان، ډنډ، ضرر؛ ۳) چاره، بند وبست.
**چیټه** (číṭa) ښځ.م. ۱) د چرسو گولۍ؛ ۲) فیصله، جوړه، روغه.
**چیټۍ** (čiṭáy) ښځ.م. رسید، رسیدخط، لیک.
**چیچړ** (čičáṛ) ص.نر.م. ۱) ځونځې، گونجې؛ ۲) سرتمبه، له یوې خبرې څخه نه تېرېدونکی، ځېلي.
**چیچړو** (čičṛó) ښځ.م. ۱) چیندرو؛ ۲) دچیندرو یوه خاصه خانه.
**چیچړوبی** (čičṛobáy) ښځ.م. چمچوبی، تشناب، چونیانی، غسلخانه، چرچوبی.

**چیچړه** (čičṛá) ښځ.م. ۱) اوبلن شی؛ ۲) ډنګره غوښه، پیپړه غوښه.

**چیچړی** (čičṛáy) ښځ.م. ۱) کنه، یوه حشره ده چې د حیواناتو پر پوستکي پورې نښتې وي؛ ۲) وړه سپېړه، ریچه.

**چیچکه** (čičáka) ښځ.م. چوچکه، چرګوړی، بټکه، نوې ځوانه شوې چرګه.

**چیچګی** (čičgáy) نر.م. ناوکۍ، ګوډی، نانځکه.

**چیچل** (čicə́l) مص. مت. ۱) چیچل؛ ۲) په غاښو پرې کول، غاښ لګول؛ ۳) د مار چک لګول، لړم نېښ وهل، د غومبسې نېښ وهل.

**چیچلی** (čičə́lay) مف. نر.م ۱) په غاښو پرې کړی شوی؛ ۲) ټک وړ کړی؛ ۳) چچلی، نوکارې شوی

**چیچوغاړه** (čičoğāṛa) ښځ.م. و ګ. چاچوغاړه.

**چیچوک** (čičúk) نر.م. یوه لوبه ده.

**چیچه** (čečá) ښځ.م. تاکید، ټینګه، چیته، چېته.

**چیچی** (čičáy) نر.م. د مرغۍ او چرګې بچی.

**چیخا** (čixá) ښځ.م. چیغه، توتو، چخه، کورې، د سپي د شړلو غږ.

**چیختاڼ** (čixtáṇ) ص. نر.م. ج. و ګ. چختاړ.

**چیخړن** (čixṛán) ص.نر.م. ۱) ګنده، ورووست، لړلی؛ ۲) چیخن، چوخن، چخې سترګی.

**چیخل** (čixə́l) مص.مت. چخل، منډل، ډکول، ننه ایستل، چوخول.

**چیخن** (čixán) ص. نر.م. چخن، چخړن، هغه څوک چې سترګې یې تل چخې کوي.

**چیخنول** (čixnawə́l) مص.مت. راکښل، راښکل.

**چیخوړی** (čixoṛáy) نر.م. زوړ، بېکاره څیز.

**چیخې** (čixé) ښځ.م. ۱) چیخني، چوخني، د سترګو مېل یا چیخړې؛ ۲) د ماشومانو د مقعد چینجی.

**چیر** (čir) نر.م. څیرنګي، تېروسکي، چشنکي، تېره مخې کانې.

**چېرته** (čérta) ض. و ګ.: چېرې.

**چیرړه** (čiṛṛá) ښځ.م. چېړه، لته، زړه لته، خوندړه، څیره، رنجه، ریښکی.

**چیرک** (čirák) نر.م. نرۍ لاره.

**چېرې** (čeré) ض. چرې، چېرته، چرته، کوم ځای، کوم پلو؛ ۲) ق. فرضاً، که چېرې.

**چیړ** (čiṛ) نر.م. ۱) کنډ، کونډ، سرېښناک څیز؛ ۲) یوه اوچته ونه ده؛ ۳) لنده ګوړه، چیرګوړه.

**چېړ** (čeṛ) نر.م. ۱) بلوسه، برخلافي؛ ۲) جنجال.

**چېړچاړې** (čeṛčāre) ښځ.م. مزې، چړچې.

**چېړل** (čeṛə́l) مص. مت. ۱) تنګول، چېړ کول؛ ۲) جنجال کول، څېړل، خبره شاربل.

**چېړلی** (čeṛə́lay) مف. نر.م. ۱) تنګ کړی، ځورولی؛ ۲) څېړلی، په یوه خبره باندې د بېرې خبرې او بحث شوی.

**چیستان** (čistán) نر.م. اړ، معما، اړونه.

**چیستکی** (čistakáy) ص.نر.م. نرم، اوبلن.

**چېشن** (češán) ص. نر.م. ۱) سهسن، ببر، وېښته لرونکی؛ ۲) یو کلن اوښ چې وړۍ پرې ولاړې وي؛ ۳) نر.م. سېرلی، اوزګوړی.

**چېشنکی** (češankáy) نر.م. سېرلی، وزګړی، اوزګوړی، یو کلن سېرلی.

**چېشل** (češə́l) مص.مت. چېښل، څښل، څکل.

**چیغار** (čiğār) نر.م. چغار، چغهار، چغهاری.

**چېغل** (čeğə́l) مص. مت. چغهدل، چغار کول.

**چیغل** (čiğə́l) نر.م. چغل، غلبېل، غټ غلبېل.

**چیغه** (číğa) ښځ.م. چغه، کرېږه، کرېکه، فریاد.

**چیکړ** (čikə́ṛ) نر.م. چیکړې، ختې، لمدې ختې.

**چیل** (čil) نر.م. لین، کتار، صف، قطار.

**چېل** (čel) نر.م. ۱) پوړنۍ، ټيکرى، زړوکى، زنانه ځادر؛ ۲) د غوزانو جومبک.

**چيلان** (čilán) نر.م. يو ډول حلال مرغه دى.

**چيلم** (čilám) نر.م. و.گ. چلم[1].

**چېلو** (čeló) نر.م. ۱) تـرکاري، يو ډول سابه دى؛ ۲) مو. ويلون سـل، يو ډول لوى وايلون دى چې څلور تارونه لري او بم اواز توليدوي.

**چېله** (čelá) ښځ.م. د ژمي څلوېښت ورځې يخنى.

**چېلى** (čeláy) نر.م. ۱) کچيکى، سـېرلي، د وزې يا نر مرغومى، د بزې بچى؛ ۲) يو ډول وزه.

**چيمبا** (čimbá) ښځ.م. تورانۍ، د سهار بلبله.

**چيمخن** (čimxán) ص. نر.م. ۱) چينجي وهلى؛ ۲) تک، بې اعتباره؛ ۳) چيخن، چخړن.

**چيمکى** (čimakáy) له هګۍ نوى راوتلى چرگوړى.

**چين** (čin) نر.م. گونځه، گونځې، کوت کوت.

**چېن** (č(e,ay)n) نـر.م. يو ډول زنځيـر دى چې په واورو کې د موټرونو پرټايرونو راپېچل کېږي

**چينجخ** (činjáx) نر.م. چينډخ، چونگښه.

**چينجن** (činján) ص. نر.م. چينجي وهلى.

**چينجى** (činjáy) نر.م. چنجى، يو ډول حشره ده.

**چينچاړى** (činčáray) نـر.م. چـرچرک، يو ډول حشره ده.

**چينډخ** (činḍáx) نر.م. و.گ. چونگښه.

**چينډخ خور** (činḍaxxór) نر.م. بغبغو، بغ، کب خورکه، لويه ماهي خوره مرغۍ ده.

**چيندرو** (čindró) ښځ.م. چيندره، د کـوچنيانو يو راز لوبه ده، نانک.

**چينده** (činda) ښځ.م. سمڅه، چېوده، سمڅ.

**چيندي** (čindí) ښځ.م. د رخت وره ټوټه، صافي.

**چينغړک** (čingarák) نر.م. چونغړک، کاکورتک چمغړک، قان قورتک.

**چينگ** (čing) ص. نر.م. واز، ارت، خلاص.

**چينگ پينگ** (čingpíng) نر.م. ۱) انې وانې، بهانې، بانې، هغه دغه؛ ۲) ژړا.

**چينگخولى** (čingxúlay) ص. نر.م. وازخولى، چينگ داړى، ارت خولى، خلاص خولى.

**چينگکه** (čingáka) ښځ.م. وړه توربخونه مرغۍ ده چې د اواز په وخت کې لکۍ پورته کوي.

**چينگول** (čingawə́l) مص.مت ۱) ارتول، وازول، ښېرته کول؛ ۲) ژړول، چنگول؛ ۳) ځـوړول.

**چينگه** (čingá) ښځ.م. ۱) چينگه خوله، وازه خوله ۲) ص. ښځ.م. وازه، خلاصه.

**چينگېدل** (čingedə́l) مـص.ل. ۱) خـلاصېدل، ښېرته کېدل؛ ۲) کړېدل، په عذابېدل، ژړېدل.

**چېنل** (čenál) ښځ.م. ۱) چـاينل، کانال، مجـرا، معبر؛ ۲) کارېز، د اوبو لاره؛ ۳) خط مشي.

**چينه** (činá) ښځ.م. له ځمکې نه داوبو د راوتلو ځاى.

**چينى** (čináy) نر.م. سور او سپين آس.

**چيني** (činí) ښـځ.م. ۱) بوره، شکره؛ ۲) د چين پورې اړوند څيزونه.

**چينۍ** (činə́y) ښځ.م. ۱) چـونۍ، قلم، پـولادي تېزه شوې ميله ده چې اوسپنه پرې پرې کـوي؛ ۲) چنۍ، د اوسپنې پانه.

**چيوتل** (čewatə́l) مص. مت. کېوتل، کښېوتل، گيرېدل، نښتل.

**چېوده** (čewdá) ښځ.م. سمڅه، سمڅ، چيوه.

**چېوهل** (čewahə́l) مص. مت. کشول، کښول، څکول، راښکل.





# زاهد

# پښتو ـ پښتو

# سیند

دوهمه برخه

د افغانستان د علومو اکاډیمي
د پښتو څېړنو نړیوال مرکز

عبدالقیوم زاهد مشواني



څېړندوی دانش څېړندویه ټولنه

# ځ

**ځ** (ǰe) ښځ.م. د پښتو الفبې لسم توری دی.

**ځاځل** (ǰāǰə́l) مص.مت. په غوسه کول، قهرول.

**ځاځمن** (ǰāǰmán) ص. پرغزناک، غوسه ناک.

**ځاځن** (ǰāǰán) ص. وګ.: ځاځمن.

**ځار** (ǰār) نر.م. ج. ۱) جار، قربان، فدا، جيو.

**ځارځار** (ǰārǰār) نر.م. ج. ۱) جارجار، قربان قربان؛ ۲) ژړا، فرياد.

**ځارځپلی** (ǰārǰapálay) ص. خوار و ځار، ځلبل، ځلبلاند.

**ځارول** (ǰārawə́l) مص. مت. قربانول، نثارول.

**ځارېدل** (ǰāredə́l) مص. ل. جارېدل، قربانېدل، فدا کېدل، نثارېدل.

**ځازل** (ǰāẓə́l) مص.مت. ګرول، ښونګاري کول، شوکارول، نوکاري کول.

**ځازلی** (ǰāẓə́lay) مف. نر.م ګرولی، شوکاري کړی شوی، نوکاري کړی..

**ځاګی** (ǰāgáy) ښځ.م. ځاکی، د غنمو ګېډی، ستری، څېتی، وځه، د غنمو وځه.

**ځالګی** (ǰālagáy) ښځ.م. ۱) د ځالې د تصغير نوم؛ ۲) د اوسېدو يا استېدو ځای.

**ځاله** (ǰā́la) ښځ.م. (ج. ځالې) منځوله، جاله، ښځولی، د الوتونکيو د اوسېدو ځای.

**ځان** (ǰān) نر.م. ۱) تن، وجود، جسم؛ ۲) ساه، دم، روح؛ ۳) شها، شهی، شهو، محبوبه.

**ځان ازمېښت** (ǰānazméṣ̌t) ا. ځان ازمېښنه، ځان پېژندل.

**ځان باوری** (ǰānbāwaráy) ص. پرځان باور لرونکی، پر ځان ډاډمن.

**ځان بسيا** (ǰānbasyā́) ص. مړه خوا، موړ اروا، پر ځان ډاډمن.

**ځانبوختيا** (ǰānboxtyā́) ا. زياتره د شعر و شاعرۍ په اړه، چې شاعر د ځان په اړه لي و ډېر غږېږي

**ځانپالن کېټ** (ǰānpālanket) ا. د ځانپالنې دود، د شخصیت پالنې کېش.

**ځانپلورلی** (ǰānplorəlay) ص. ځان خرڅ کړی، مربی، ګوداګی.

**ځانپېښې** (ǰānpeṣe) ا. ځان ژوند لیک، ژوند پېښې.

**ځانتنی** (ǰāntanáy) ص. په ځان پورې اړوند، ځاني، ځانګړی.

**ځانته** (ǰā́nta) ص.نب. ځانله، یوازې، بېل، جلا.

**ځانجوړی** (ǰānjóṛay) ص. چې خپل ځان پخپله جوړ کړی یا رسولی وي.

**ځان ځاروونی** (ǰānǰārawū́nkay) فا.نرم. فدایي، قربانېدونکی، ځارېدونکی، جارېدونکی.

**ځان ځاني** (ǰānǰāní) ښځ.م. ۱) خپل خپل ځانته؛ ۲) خودخواهي، خودي؛ ۳) بې وسیلې توب.

**ځانځولی** (ǰānǰoláy) ښځ.م. ج. دانګ ډولی، ځنځولی، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**ځانځومړی** (ǰānǰūmṛáy) ص. نر.م. ۱) تمپ، کمزوری؛ ۲) سست، ناراسته، لټ.

**ځان خورګي** (ǰānxorgí) ښځ.م. زړه خوړنه، ځان کړونه، ځیګرخوني.

**ځانخوښي** (ǰānxwaṣí) ښځ.م. ځان خوښونه، ځان ته ځه وینه، ځان په څه کې حسابونه.

**ځانخوښی** (ǰānxwáṣay) ص. نر.م. په ځان مین ځان په څه کې حسابوونکی.

**ځاندار** (ǰāndā́r) ص.نر.م. جاندار، د ساه خاوند، روح لرونکی، ساکښ.

**ځاندره** (ǰāndara) ښځ.م.(ج. ځاندرې) ۱) ځانده، شکل، بڼه، صورت؛ ۲) ځانګه، وجود، تنه.

**ځان ساتی** (ǰānsā́tay) ص. نر.م. محتاط، ځان ژغوروونکی، احتیاط کوونکی، محافظه کار.

**ځانسپاری** (ǰānspā́ray) ص. ځان سپارونکی، ځانتېری، ځان تسلیموونکی، سلامي.

**ځانستای** (ǰānstā́y) ص. ځان ستایونکی، ځانښود، ځانښکاری.

**ځان ستاینه** (ǰānstāyə́na) ښځ.م. خود ستایي د ځان صفت کونه.

**ځان ستایونی** (ǰānstāyū́nay) ص. نر.م. د ځان صفت کوونکی، ځان ستایونکی.

**ځان ښکاری** (ǰānṣkā́ray) ص.نر.م. ځان ښکاره کوونکی، خودنما، تظاهر کاره.

**ځان غتاوی** (ǰānğatā́way) ا. لویي، سترو سترچاری، ځان غټ ښکاره کول.

**ځانغودي** (ǰānğodí) ا. ځانمندي.

**ځانکاری** (ǰānkā́ray) ص. خپلکاری، خپل چاری، خودکار.

**ځانګړتیا** (ǰāngartyā́) ښځ.م. ۱) یوازېتوب، ګوښېتوب؛ ۲) خصوصیت، مشخصه.

**ځانګړنوم** (ǰāngarnū́m) ا. ځانګړی نوم، عَلَم، مشخص نوم.

**ځانګړی** (ǰāngə́ṛay) ص.نر.م. (ج. ځانګړي) ۱) یوازې، بېل؛ ۲) خپلواک؛ ۳) مشخص، مخصوص، ممتاز.

**ځانله** (ǰā́nla) ص. نب. ۱) یوازې، بېل، جلا، ځانته، ځانګړی؛ ۲) د ځان لپاره.

**ځانمن** (ǰānmán) ص. نر.م. مغرور، کبرجن.

**ځانمنتوب** (ǰānmantób) نر.م. لويي، خود بیني، غرور، کبر، تکبر، ځان لیدنه، ځانمني.

**ځانمنی** (ǰānmánay) ص. نر.م. مغرور، کبرجن.

**ځانواله** (ǰānwā́la) ا. خانخوښي، خودپسندي، خودخواهي.

**ځانویني** (ǰānwiní) ص. ښاځمني (غرور)، خودبیني.

**ځاني** (ǰānī) ص. نب. ۱) له ځان سره تعلق لرونکی ۲) خوراګران، د ډېر صميمي.
**ځانه** (ǰā́na) ښځ.م. (ج. ځانې) و ګ. زانه.
**ځاو** (ǰāw) نر.م. مارش، د حملې او دتګ حکم.
**ځاوو** (ǰāwū́) نر.م. ځړوبی، زاوه، جړوبی.
**ځای** (ǰāy) نر.م. ۱) جای، تېرکانه، مکان، محل؛ ۲) مقام، درجه؛ ۳) وخت او موقع.
**ځای پرځای** (ǰāyp(ə,u)rǰā́y) ځـای په ځای، په ځای، مقامي؛ ۲) وار د واره، ټک له ټکه.
**ځای غلی** (ǰāyǧalə́y) ښځ.م. هغه ښځه چې تر لنګون (زېږونې)) وروسته درد ولري.
**ځایکی** (ǰāykáy) نـر.م. ګل زړی، د نښې مـنـځ، هدف، پخپله هدف.
**ځایګی** (ǰāygáy) نـر.م. ۱) په ټټـر، پوخ په نښه؛ ۲) ټاکلی ځای؛ ۳) ځای، د ښځې تناسلي آله؛ ٤) د ځای د تصغير نوم؛ ۲) نښه، نخښه.
**ځايګير** (ǰāygír) ص.نر.م. ۱) دېـره، استوګن، اوسېدونکی؛ ۲) په زړه کې، د زړه دننه.
**ځايناستی** (ǰāynā́stay) ص.نـر.م. ۱) جانشينی، وليعهد، تقاعد؛ ۲) مجازاً زوی، بچی.
**ځایول** (ǰāyawə́l) مص. مت. ۱) جایول، ځای پیدا کول، خوندي کول؛ ۲) زغمل، پېڅل.
**ځایېدل** (ǰāyedə́l) مص. ل. ۱) ځـای کېدل، کوم شـي ته په زور يا بې زوره ځـای ميندل کـېدل؛ ۲) زغمل کېدل، تحمل کېدل.
**ځبځب** (ǰā́bǰab) ص. نر.م. ميده ميده، ذره ذره.
**ځب زیری** (ǰabziráy) ص. نر.م. ببر زیری.
**ځبل** (ǰabə́l) مص. مت. کوټل، ميده کول، ځپل.
**ځبله** (ǰā́b lā) يو تر بله، يو له بله، په خپلو کې.
**ځبلی** (ǰabə́lay) مف. نـر.م. ۱) ځپلی، کـوټلی، ميده کړی؛ ۲) خوار، ذليل؛ ۳) ګڼ، ببر.

**ځبن** (ǰabə́n) ص. نر.م. ۱) خېرن، خېچن، خيچن؛ ۲) ناپوه، احمق؛ ۳) ځیږ، سخت.
**ځبوالی** (ǰabwā́lay) نر.م. ګنوالی، ګوروالی.
**ځبول** (ǰabawə́l) مص.مت. ۱) توت ځنډول، توت تکول؛ ۲) ځپول، شړول.
**ځبونکی** (ǰabū́nkay) نـر.م. ميده کوونکی، کوټونکی، پستوونکی.
**ځبېدل** (ǰabedə́l) مص. ل. ۱) ګنېدل، ګورېدل؛ ۲) توت تکېدنه، توت ځنډل کېدنه.
**ځبېښل** (ǰ beṣə́l) مص. مت. (له ټولو صيغو سره) و ګ. زبېښل).
**ځپلی** (ǰapálay) نر.م. کوټلی، وهلی ځپلی.
**ځځا** (ǰəǰā́) ښځ.م. جزجز، د غوښې د وریتېدو اواز.
**ځځبوکی** (ǰajbūkáy) نر.م. ځځغولی، جزغولی.
**ځځغولی** (ǰajǧólay) نر.م. جځغولی، جزغولی، خځوزی، هغه مـواد چې دوازګې د وېلې کېدو وروسـتـه په لوښي کې پاته کېږي.
**ځځېرل** (ǰajerə́l) مص. مت. ۱) توته توته کول، ورزل؛ ۲) سپکول، ښکنځل، ؛ ۳) چیچل.
**ځخه** (ǰə́xa) نـر.م. جـوک، د توپک د نښې ځای؛ ۲) دلرګي زخه؛ ۳) زخـه، وچـه دانه ده چې د انسان پر پوست باندې راخېژي.
**ځرځ** (ǰarǰ) ص. نـر.م. ۱) سـور شين بخون رنګ- ځرځې سترګې؛ ۲) و ګ. زرغ.
**ځری** (ǰəráy) نر.م (ج. ځري) ۱) قاصد، استازی؛ ۲) جاسوس؛ ۳) جری، نظير، د توپک د فاصله ټاکلو او نښه نیولو ځای.
**ځړانګه** (ǰarā́nga) نر.م. (ج. ځړانګې) هغه باد او سيلی چې آثار يې له ليرې ليدل کېږي.
**ځړوبه** (ǰaróba) ښځ.م. ځړوبی، جړوبی، آبشار.
**ځړول** (ǰarawə́l) مص. مت. ځوړندول، کوږول.

**ځږېدل** (ǰaṛedә́l) مص. ل. ځوړندېدل، کوږی کېدل.

**ځز** (ǰәz) صوت. نر. م. جز، په تاوده شي باندې د اوبو د توېدلو اواز:

**ځزکی** (ǰәzkáy) نر. م. جزېدنه، ځځېدنه.

**ځږ** (ǰaz) نر. م. ۱) د خام بند یا ... چې زېږ ولري او اوبه تري راووځي؛ ۲) سېلاب راوړي شګه.

**ځږی** (ǰazáy) نر. م. زیږه ځمکه، هغه ځای چې اوبه او نباتات و نه لري.

**ځښت** (ǰaṣt) نر. م. ۱) زښت، ناخوښ، هغه څوک چې د چا بد ایسي؛ ۲) زیات، زښت، ډېر.

**ځښکله** (ǰaṣkala) ق. هغه وخت، کله، څه وخت، هر کله؛ کله چې، هغه وخت چې.

**ځغ** (ǰәğ) نر. م. ځز، جز، ځځ.

**ځغاست** (ǰğāst) نر. م. منډه، تېښته، ځغل، ترپ.

**ځغاسته** (ǰğā́sta) ښځ. م. منډه، تېښته، ترپ.

**ځغاله** (ǰğālā́) ښځ. م. زغاله، پېره، غروږی.

**ځغځه** (ǰağǰá) ښځ. م. یو ډول شنه وابنه دي.

**ځغستا** (ǰğastā́) ښځ. م. منډه، تېښته، ځغل، ترپ.

**ځغستل** (ǰğastә́l) نر. م. منډه کول، ځغاستل، تېښته کول، ترپل، ترپ کول، منډه اخستل.

**ځغل** (ǰğal) نر. م. منډه کونه، تېښته کونه.

**ځغلا** (ǰğalā́) ښځ. م. منډه، ځغاسته، تېښته، ځغل.

**ځغلند** (ǰğáland) ص. نر. م. ځغلېدونکی، د منډو په حال کې، د تېښتې په حال کې،

**ځغلندی** (ǰğalandáy) نر. م. ۱) تېښتېدونکی، ځغلېدونکی؛ ۲) ذلیل، بدبوتی؛ ۳) عاجز، خوار؛ ٤) ډارن؛ ٥) ارمانجن.

**ځغلول** (ǰğalawә́l) مص. مت. ۱) په منډه کول، په تېښته کول؛ ۲) په مخه کول، په مخه اخستل.

**ځغلېدل** (ǰğaledә́l) مص. ل. په منډه کېدل، په تېښته کېدل، منډه وهل.

**ځغول** (ǰağawә́l) مص. مت. جغول، جزول، جوزول، په غوړو یا تېلو کې سره کول.

**ځغونځ** (ǰğünǰ) نر. م. ځغونز، حرکت، د مچیو او چنجیو حرکت، خوځ ماخوځ، غونځېدنه.

**ځغونځاوي** (ǰğünǰā́we) ښځ. ج. غونزاوي، ډېره او نامنظمه ګڼه ګوڼه، ازدحام.

**ځغونځول** (ǰğünǰawә́l) مص. مت. پارول، غونزول، په نامنظمه ګڼه ګڼه راوستل.

**ځغېدل** (ǰağedә́l) مص. ل. جوزېدل، جغېدل؛ په غوړو کې غوښه په شور او جغ جغ راتلل.

**ځک** (ǰak) نر. م. تکلیف، رېږ، آزار، زک.

**ځکلول** (ǰuklawә́l) مص. مت. زوکلول، رېږول، خپه کول، ازارول، ځورول.

**ځکلېدل** (ǰukledә́l) مص. ل. زوکلېدل، رېږېدل، ځورېدل، کړېدل، په تکلیف کېدل.

**ځکندن** (ǰakandán) نر. م. و. ګ. ځنکندن.

**ځکه** (ǰә́ka) ربط. په دې سبب، په دې دلیل، په دې وجه، په دې علت، له دې امله.

**ځګ** (ǰag) نر. م ۱) ځک، قف، کف؛ ۲) جګ، جک، د مستې شاربلو خاورین لوښی.

**ځګال** (ǰgāl) نر. م. میده ډوډۍ، وړه ډوډۍ چې د پاسه ښوروا وربانډې اچول کېږي.

**ځګخور** (ǰgaxór) نر. م. کب خورکه مرغۍ.

**ځګر** (ǰigár) نر. م. ځیګر، ینه، اینه، ینه.

**ځګرخون** (ǰigarxū́n) نر. م. جیګرخون، غمجن، خفه، په کړاو اخته، په تکلیف او رېږ اخته.

**ځګرور** (ǰigarwár) ص. نر. م. ۱) بهادر، تکړه، تورزن؛ ۲) د زیاتې حوصلې څښتن.

**ځګلانه** (ǰaglā́na) ښځ. م. غرکه، هغه ګوډۍ چې مستې په کې شاربلې کېږي.

**ځګلن** (ǰaglán) ص. نر. م. ځګن، ځګ لرونکی.

ځګېدل (ǰgedə́l) مص. ل. ختېکول، شاړبل کېدل، ځګ پرېښول.

ځل (ǰal) نر.م ۱) ځلا، برېښېدا؛ ۲) سخته تنده، جل ۳) وار، نوبت؛ ٤). زل، د تېوکرانو پوښن چې د ښارويو په شا باندې اچول کېږي.

ځلا (ǰalā́) ښځ.م. ځل، زلق، برېښنا، ځلېدا.

ځلاند (ǰalā́nd) ص. نر.م.ج. ځلان، ځلېدونکی، ځلالرونکی، برېښېدونکی.

ځلبل (ǰalbál) ص. نر.م.ج. جلبل، زلقېدونکي.

ځلبلاند (ǰalbalā́nd) نر.م. نارامه، پرېشانه.

ځلبلاندول (ǰalbalāndawə́l) مص.مت. ځورول، کړول، پرېشانه کول، ناکراره کول.

ځلبلاندېدل (ǰalbalāndedə́l) مص. ل. پرېشانه کېدل، ځورول کېدل، غمجن کېدل.

ځلبلی (ǰalbaláy) ص. نر.م. روښانه، ځلېدونکی، چنګېدونکی، پنګېدونکی.

ځلځلی (ǰalǰaláy) نر.م. يو ډول هډوکی دی.

ځلښت (ǰaləʂ́t) نر.م. ځل، ځلا، زلق، پنګ.

ځلک (ǰalk) نر.م. برېښ، ځلا، خلا، ځلښت.

ځلکول (ǰalkawə́l) مص. مت. ځل وبل کول، ځلول، زلق کول، چنګول، پنګول.

ځلکېدل (ǰalkedə́l) مص. ل. ځلېدل، زلقېدل، پړکېدل، پرقېدل، چنګېدل، پنګېدل.

ځلما (ǰalmā́) نر.م. ځواني، ځلميتوب، زلميتوب.

ځلموټی (ǰalmóṭay) ص. نر.م. ځلمکی، ژنی، ژنکی، زنی، ځوانکی.

ځلمی (ǰalmáy) ص. نر.م. زلمی، ځوان، زنی.

ځلميتوب (ǰalmitób) نر.م. زلميتوب، ځواني.

ځلند (ǰalánd) ص. نر.م. ظالم، زبردست جابر.

ځلندوکی (ǰalandū́kay) ص.نر.م. برېښېدونکی، زلقېدونکی، جل و بل کېدونکی.

ځلوبی (ǰalobáy) ښځ.م. ځيلبی، جلبی، يو ډول خواږه خواړه دي.

ځلوبی (ǰalóbay) نر.م. سراب، پېريان اوربه.

ځلوکه (ǰaluká) ښځ.م. د زره رګونه.

ځلول (ǰalawə́l) مص. مت. زلقول، پړکول، چنګول، پنګول، برېښول.

ځلون (ǰalū́n) نر.م. ژی، زی، رابيا، د اوبو لوی ژی چې پر حيواناتو باندې ورول کېږي.

ځله (ǰā́la) ښځ.م. ۱) ځل، وار؛ ۲) مينه، شوق.

ځلي (ǰalí) ښځ.م. زيار، هڅه، خواري، کړاو، رېړ.

ځلې (ǰále) ښځ.م. د «هلې» سره د منت او کوښښ مانا وې ورکوي – هلې ځلې يې وکړې.

ځلېدل (ǰaledə́l) مص. ل. پړکېدل، برېښېدل، پرقېدل، چنګېدل، پنګېدل، چړکېدل.

ځما (ǰmā) ض. و ګ. زما.

ځمبل (ǰambə́l) مص. مت. ۱) ځنبول، بانه رېبول؛ ۲) ځنډل؛ ۳) بې عزته کول، بې آبه کول.

ځمبلی (ǰambálay) نر.م. ځملی، منبلی شوی، يو تر بله وهل شوي، ځنډلی.

ځمبنه (ǰambána) ښځ.م. بانه رېبونه، ځمبنونه، زمبنه، سترګه وهنه، سترګک وهنه.

ځمبېدل (ǰambedə́l) مص. ل. ورو ورو تلل.

ځمکپوهاند (ǰmakpohā́nd) ص. ځمکپوه، جيولوجي پوه.

ځمکپوهنه (ǰməkpohána) ا. د ځمکې پېژندنه، د ځمکې علم، جيولوجي.

ځمکتوت (ǰməktū́t) ا. ځمکني توب.

ځمکدننه (ǰməkdənána) ص. په ځمکه کې، د ځمکې دننه.

ځمکسمون (ǰməksamū́n) ا. د ځمکې اصلاح، د ځمکو اصلاحات.

**ځمکلار** (ǰmaklā́r) ا. ځمکنی لار، مېترو.

**ځمکلاندې** (ǰmaklā́nde) ص. تر ځمکې لاندې (اوبه یا...).

**ځمکنی** (ǰmakanáy) ص. نر. م. ځمکې ته منسوب.

**ځمکنی بشپړتیا** (ǰmakanaybašpaṛtyā́) ا. ځمکنی تمامیت، ارضي تمامیت.

**ځمکنی ځواک** (ǰmakanayǰwā́k) ځمکنی قوه.

**ځمکواک** (ǰmakwā́k) جاګیردار، فیوډال.

**ځمکوال** (ǰmakawā́l) نر. م. د ځمکې څښتن.

**ځمکوېش** (ǰmakwéš) ا. د ځمکې وېشنه.

**ځمکه** (ǰmáka) ښځ. م. ۱) مځکه، زمکه؛ د شمسي نظام له سیارو څخه یوه سیاره ده چې موږ او تاسو پکې ژوند کوو؛ ۲) مخ، سطحه.

**ځمل** (ǰmal) مص. مت. ځمبل، بانه، رپول، سترګې رپول، سترګې ښوررول.

**ځملی** (ǰmálay) نر. م. منبل شوی، مورل شوی، یو تربله وهل شوی، لت پت شوی.

**ځموږ** (ǰmūz) ض. ج. و ګ. زموږ.

**ځنازه** (ǰanāzá) ښځ. م. جنازه.

**ځناور** (ǰanāwár) نر. م. ۱) څیرونکی حیوان، جناور ۲) حیوان، څاروی.

**ځناورتوب** (ǰanāwartób) نر. م. ۱) حیوانیت، وحشي توب؛ ۲) حماقت، بې عقلي.

**ځنبول** (ǰanbawə́l) مص. مت. ځنبل، ځمبل.

**ځنبېدل** (ǰanbedə́l) مص. ل. سترګې زنبېدل، سترګې رپېدل، بانه ښوررېدل.

**ځنځ** (ǰanǰ) نر. م. خوری، پتکری، زمچ.

**ځنځرې** (ǰanǰirə́y) ښځ. م. یو ډول کښېده چې د زنځیر په څېر وي.

**ځنځلېر** (ǰanǰlér) نر. م. جالر، یو ډول تور ځوندی دی چې په کېږدۍ باندې شړېږي.

**ځنځول** (ǰanǰawə́l) مص. مت ۱) څاڅکی څاڅکی تویول؛ ۲) لړځه ورکول، په شومتیا سره یو شی چاته ورکول.

**ځنځولیه** (ǰanǰolayá) ښځ. م. ډنډولی، یو شی په څلورو اخستی، کوم څه په څادرکې اخیستل.

**ځنځه** (ǰanǰá) ښځ. م. ۱) زنځه، سرسوبله، شوبله؛ ۲) ص. نب. لالچي، جبلي، چیچړ بنیادم.

**ځنځی** (ǰanǰə́y) ښځ. م. زنځېرک، د ښځو یو ډول ګاڼه.

**ځنځېدل** (ǰanǰedə́l) مص. ل. څڅېدل، تکی تکی تویېدل، څاڅکی څاڅکې تویېدل.

**ځنځیر** (ǰanǰír) نر. م. زنځیر.

**ځنځیرکه** (ǰanǰiráka) ښځ. م. د خامکدوزۍ هغه کرښه چې د زنځیر په څېر وي.

**ځنځیرې** (ǰanǰirə́y) ښځ. م. یو ډول لیک دود دی چې د خوشحال ختک لخوا دخپلې کورنۍ لپاره تاکل شوی و.

**ځنخول** (ǰanxwál) نر. م. ۱) بې سدي، بېهوښي، له حاله تلنه، د خپګان څپه؛ ۲) د زړه پرده.

**ځنډ** (ǰanḍ) نر. م. ایسارتیا، ډیل، درنګ، معطلي، تال.

**ځنډپوهی** (ǰanḍpóhay) ص. لارغپوهی، وروسته پوهېدونکی، ډېرفهم.

**ځنډمن** (ǰanḍmán) ص. نر. م. ځنډن، ناوخته شوی، معطل شوی، تال شوی.

**ځنډن** (ǰanḍán) ص. نر. م. پخوانی، لرغونی، وراندینی، قدیمي، د ډېرې مودې.

**ځنډنی** (ǰanḍanáy) ص. نر. م. ۱) پخوانی، لرغونی، قدیمي؛ ۲) ایسار، تال، معطل.

**ځنډنی کوکو** (ǰanḍanáykū́kū) نر. م. پتونی ګل، یو ډول ګل.

**ځنډوالی** (ǰanḍwā́lay) نـر.م. معطلي، ناوخته والی، ځالېدنه، معطلېدنه، ځنډېدنه.

**ځنډول** (ǰanḍawə́l) مص.مت. ځالول، ايسارول، ناوخته کول، معطلول.

**ځنډېدل** (ǰanḍedə́l) مص.ل. ځالېدل، ايسارېدل، ناوخته کېدل، معطلېدل.

**ځنغلي** (ǰanğalí) نر.ج. زنګني، زاړه پرتوګ ته له نوي توکر څخه له بډې ښکته پايڅې اچول.

**ځنکندن** (ǰankandán) نـر.م. ځنکـدن، د نزعې حالت، د ژوند آخري سلګۍ.

**ځنګر** (ǰangár) ص. نر.م. بې هوښه، بې سده.

**ځنګل** (ǰangál) نـر.م. ګـڼې ونې، د ګـڼـو ونو او وحشي بوټو ځای.

**ځنګل څېړی** (ǰangalceṛáy) نـر.م. يـوډول تريخ بوټی دی چې زېړه ريښه لري.

**ځنګلساتی** (ǰangalsā́tay) ص. ځنګلوان، ځنګل ساتونکی.

**ځنګلي** (ǰangalí) ص. نب. ۱) د ځنګل، د ځنګل سره تعلق لرونکی؛ ۲) وحشي؛ ۳) مـج. کـم عقل، ناپوه، بې تربيې، بې تمدنه.

**ځنګل ګړی** (ǰangalgaṛáy) ښځ.م. جونګړه، د ځنګله ساتونکي ځای

**ځنګوری** (ǰangū́ray) نـر.م. دانګورو واښکی، ډنډوری، د انګورو ښکالی.

**ځنل** (ǰanə́l) مص. مت. سوری په کې جوړول.

**ځنې** (ǰə́ne) اد. ۱) څخه، تربنه، ورنـه، ورڅـخـه، څنه؛ ۲) بعضې، ځينې، بعض.

**ځنکی** (ǰanḱáy) نر.م. و ګ. زنکی.

**ځواب** (ǰawā́b) نـر.م. ۱) غبرګـون، د پوښـتـنې ځواب؛ ۲) احوال معلومېدل؛ ۳) ردول، منـفي جواب ورکول.

**ځواب لوڅی** (ǰawāblocáy) ص.نر.م. ژر ځواب، حاضر ځواب، ځواب ګر، ځوابي.

**ځواکپېر** (ǰwākpér) ا. د اقتدار يا قدرت دوره.

**ځواکجګړه** (ǰwākjagṛá) ا. د اقتدار پر سر شخړه او جګړه.

**ځواکځی** (ǰwākǰáy) ا. د قـدرت ځـای، د انرجۍ مرکز، نيروګاه (برېښنايي، ذروي).

**ځواک سيمه** (ǰwāksíma) ا. تر ځـواک لانـدې سيمه، د قدرت قلمرو، د اقتدار ساحه.

**ځواکلېږ** (ǰwākléẓd) ا. د ځواک يا اقتدار لېږدونه، انتقال.

**ځواکمن** (ǰwākmán) ص. قـدرتمـن، زورور، د اقتدار خاوند.

**ځواکمني** (ǰwākmaní) ا. پيـاوړتيـا، اقـتـدار، توانمندي.

**ځواکمېچ** (ǰwākméč) ا. د ځواک سنجوونکې آله.

**ځواکوېش** (ǰwākweš) ا. د قدرت وېش، د اقتدار تقسيم (په دولت کې).

**ځواله** (ǰwālá) ښځ.م ۱) ښوروا، زومنـه؛ ۲) نواله، ځـواله، د اوربشو د اوړو څخه جـوړ هغه غټې چې پخوا به يې په پيـلانو خـوړلې؛ ۳) مج. د ښوروا لپاره تر اندازې زيات ه ډوډۍ ميده کول.

**ځوان** (ǰwān) ص. نر.م. ۱) ژلمی، زلمی، بالغ شوی؛ ۲) بهادر، زړور؛ ۳) عس. لـه دريم بريدمـن څخه تر جګتورن پورې منصبداران.

**ځوانکه** (ǰwānáka) ښځ.م. ګـرمکې، ګرمکۍ، ستو، هغه دانې چې د زلميتوب په وخت کې په مخ باندې راخېژي.

**ځوانکی** (ǰwānakáy) ص.نر.م. زلموټی، ځوان، زلمکی، نوی زلمی، زلمی، ژنکی، ژنی.

**ځوانګه** (ǰwāngá) ښځ.م. چيچل، سکونډل، سکوه.

**ځوانمرد** (ǰwāndmárd) ص. نر.م ۱) نر، بهادر، مېړنی؛ ۲) سخي؛ ۳) ډوډۍ ماړ.

**ځوانمرګي** (ǰwānmargí) ښځ.م. ځوانیمرګي، د ځوانۍ مرګ، په زلمیتوب کې مړینه.

**ځوانول** (ǰwānawə́l) مص. مت. ۱) ځوان کول، مج. قوت او طاقت ورکول.

**ځواني** (ǰwāní) ښځ.م. ژنیتوب، شباب، جواني، زلمیتوب؛ ۳) ښکلا؛ ٤) قوت او طاقت.

**ځوانېدل** (ǰwānedə́l) مص. ل. ۱) ځوان کېدل؛ ۲) طاقت او قدرت موندل.

**ځواوله** (ǰwāwlá) ښځ.م. و ګ. ځومنه.

**ځواونه** (ǰwāwná) ښځ.م. و ګ. ځواله.

**ځوځات** (ǰawǰā́t) ښځ.م. و ګ. زوزات.

**ځور** (ǰawár) نر.م. تکلیف، کړاو، رنځ، ازار.

**ځور** (ǰur) ص. نر.م. ۱) ژر اورېدونکی، تېره غوږی ۲) پوه، دانا، خبرک؛ ۳) متوجه.

**ځورتوب** (ǰurtób) نر.م ۱) ځورتیا، تېزه اورېدنه ۲) پوهه، دانايي، متوجه کېدنه.

**ځورول** (ǰawrawə́l) مص. مت. ازارول، کړول، تکلیفول، رنځول، په عذابول.

**ځورول** (ǰurawə́l) مص. مت. ۱) ژر اورول، تېز اورول؛ ۲) پوه کول، عاقلول؛ ۳) متوجه کول؛ ٤) هضمول.

**ځوره** (ǰurá) ښځ.م. هضم، هضمېدنه، هضمونه- په ځوره دې شه= نوش جان دې شه.

**ځورېدل** (ǰawredə́l) مص.ل. ۱) په عذابېدل، ځورېدل، تکلیف رسېدل؛ ۲) غمنجنېدل.

**ځورېدل** (ǰuredə́l) مص.ل. ۱) هضمېدل، حلېدل؛ ۲) لګېدل.

**ځوړ** (ǰwaṛ) ص. نر.م. ج. د لوړ ضد، ځوړې، مخ په کښته، اوترايي، ځوړې.

**ځوړتوب** (ǰwaṛtób) نر.م. ځوړتیا، ځوړوالی.

**ځوړند** (ǰwaṛánd) ص.نر.م. کوږی، ځوړل شوی، ځړېدونکی، ځړېدلی.

**ځوړندوالی** (ǰwaṛandwā́lay) نر.م. ځوړندتیا، ځوړندتوب، ځوړندېدنه.

**ځوړندول** (ǰwaṛandawə́l) مص. مت. ځوړول، ځوړندول، ځړول، کوږی کول.

**ځوړندی** (ǰwaṛandáy) نر.م. په کوږ کې هغه شی چې له لوخو او میزري ښخه جوړ شوي وي.

**ځوړندېدل** (ǰwaṛandedə́l) مص.ل. ځړېدل، کوږی کېدل.

**ځوړوبی** (joṛobáy) نر.م. ځړوبی، جړوبی، زاوه.

**ځوړول** (ǰwaṛawə́l) مص. مت. ۱) مخ کښته کول؛ ۲) ژوړول، غوچول.

**ځوړېدل** (ǰwaṛedə́l) مص. ل. مخ کښته کېدل، سر ځوړی کېدل، سر کښته کېدل.

**ځوز** (ǰoz) نر.م. زوز، ځوځ، یو ډول ازغن بوټی.

**ځوزخانه** (ǰozxāná) ښځ.م. د ځوځو کوډی، د ځوزانو خونه، ځوز کوډۍ، خارخانه.

**ځوزګوړی** (ǰozgū́ṛay) ښځ.م. ګوړی، د ځوځو زاوله، ځوز ژاوله، ترنجبین.

**ځوزن** (ǰozán) ص.نر.م. اغزن، ازغن.

**ځوزیانه** (ǰozyā́na) ښځ.م. اغزن ځای، ازغي لرونکي سیمه، اغزنه علاقه، اغزیانه.

**ځوږ** (ǰwaẓ) نر.م. شور، بګت، غالمغال.

**ځوښ** (ǰoṣ) نر.م. ۱) جوش، خوټېدنه؛ ۲) تاو، غوسه، کینه.

**ځوښا** (ǰoṣā́) ښځ.م. دوښا، د انګورو یا هرې مېوې شیره، د توتو شیره، جوشاب.

**ځوښول** (ǰoṣawə́l) مص. مت. ۱) ځوښ ورکول؛ ۲) شیره ایستل، دوښا کول، دوښا ایستل.

**ځوښېدل** (ǰoṣedә́l) مص.ل. ایشېدل، جوشېدل، جوش خوړل.

**ځوکی** (ǰokáy) نر.م. زوږی، ستغ، سخته لاره.

**ځوګ** (ǰwag) نر.م. بدبویه غرنی بوټی دی.

**ځول**(۱) (ǰūl) نر.م. زول، سخته یخنی، سخت یخ.

**ځول**(۲) (ǰawә́l) نر.م. زویل، یو ډول بوټی دی چې زیړ ګل کوي.

**ځوله** (ǰolá) ښځ.م. ۱) زوړ کمیس، ګډله کمیس؛ ۲) لوی او اوږد جوال دی چې د وزو لسه ژغنو څخه جوړېږي او په اوښ باندې بارېږي.

**ځولۍ** (ǰoláy) ښځ.م. ۱) جولۍ، لمنه؛ ۲) کلچ، پېښه، جوال غوندې شی دی چې دواړه سرونه او یو لوری یې ګنډلی وي.

**ځومبک** (ǰumbák) نر.م. ځونډی، ګوچه، ګچه.

**ځومبکی** (ǰūmbakáy) نر.م. ځومبکه، وتی، هغه وتی چې ښځې یې په غوږو باندې راځړوي.

**ځومبول** (ǰūmbawә́l) مص.مت. ۱) خوځول، کرارکرار حرکت ورکول؛ ۲) سستول.

**ځومبېدل** (ǰumbedә́l) مص.ل. ۱) خوځېدل، سوکه حرکت کول؛ ۲) سستېدل.

**ځومنه** (ǰūmná) ښځ.م. ځواله، ښوروا، زېمنه.

**ځون** (ǰawә́n) نر.م. پچه، پچن، بتی، د کلال پچه.

**ځونډی** (ǰundáy) نر.م. ۱) طره، پوپکه، کلغی؛ ۲) زومبک، ګچه، ځونډی.

**ځونګه** (ǰongá) ښځ.م. عادت، فطرت.

**ځوی** (ǰoy) نر.م. زوی، بچی، زمنګی.

**ځوېر** (ǰwer) نر.م. ځوړ، مخ ښکته، د تل په لور.

**ځوېښل** (ǰwesә́l) مص.مت. ځبېښل، ځوپل.

**ځیځېرل** (ǰiǰerә́l) مص.مت. ۱) ټکول، وهل؛ ۲) خوړل، وهل لکه موږک وهل.

**ځیر** (ǰir) ص.نسـ.م. ۱) متوجه؛ ۲) تېزنظره، باریک بین؛ ۳) خالص، سوچه؛ ٤) مسو. زیر، چیغندک، تربېل د بم اواز ضد..

**ځیرک** (ǰirák) ص.نر.م. هوښیار، تېزنظره، پوه.

**ځیرکتوب** (ǰiraktób) نر.م. ځیرکتیا، ځیرکوالی، هوښیاري، پوهه.

**ځیرکتونی** (ǰiraktunáy) ص.نر.م. تېزنظری، په ځیر نظر کتونکی، پوه، دقت کوونکی.

**ځېرکی** (ǰerkáy) نر.م. دوپوسته.

**ځیرمن** (ǰirmán) ص.نر.م. هوښیار، ځیرک، پوه.

**ځېرمه** (ǰermá) ښځ.م. زېرمه، توښه، ذخیره.

**ځېرمه وال** (ǰermawā́l) ص.نر.م. هغه څوک چې د ډوډۍ د تیارولو نوکري ورپه غاړه وي.

**ځیرول** (ǰīrawә́l) مص.مت. ۱) کتل، لیدل، لتول؛ ۲) متوجه کول.

**ځیره** (ǰīrá) ښځ.م ۱) وګ. جیره؛ ۲) زنکی، زیره، یو ګیاه ده چې تخم یې ښه بوی لري.

**ځیرېدل** (ǰīredә́l) مص.ل. متوجه کېدل، دقت کول.

**ځیزغالي** (ǰīzğālí) ښځ.م. ځـزغولي، سوی، بوګړی، کروپی، ګجګ ژی.

**ځیږ** (ǰīẓ) ص.نر.م. ۱) زیږ، دیږ؛ ۲) ببر؛ ۳) غیرتي؛ ٤) سپېڅلی، سوچه.

**ځیږتوب** (ǰīẓtób) ص.نر.م. ۱) زیږتوب، ځېږتیا؛ ۲) ببروالی؛ ۳) سخت مزاجي؛ ٤) سوچه والی، سپېڅلتیا.

**ځیږګی** (ǰīẓgáy) نر.م. جیږګی سږګی؛ ۲) یو ډول بوټی دی چې په پانو کې یې اغزي وي.

**ځېږمه** (ǰeẓmá) ښځ.م. جیږمه؛ دسترګې د پوښ هغه برخه چې بانه ورباندې راشنه کېږي.

**ځیږول** (ǰīẓawә́l) مص.مت ۱) ببرول؛ ۲) دیږول، زیږول؛ ۳) پرننګ او غیرت راوستل.

ځیږېدل (ǰizedál) مص.ل ۱) بیرېدل؛ ۲) دیژېدل، زیږېدل؛ ۲) غوسه کېدل، سوختېدل، قهرېدل.

ځېسل (ǰesál) مص. مت. کرول، جسل، ازارول، ځورول، تکلیف ورکول، کړول.

ځیگر (ǰigár) نر.م. وگ. ځګر.

ځېل (ǰel) نر.م. ۱) جهل، ضد، اړی، سرتمبګي؛ ۲) جهل، جېل؛ ۳) کتار، قطار.

ځېلانځه (ǰelānǰá) ښځ.م. زلیانځه، ځلیانځه، پېروان، پربوان.

ځېلپوهه (ǰelpóha) ا. ځېلپوهنه. د ژبپوهنې هغه څانګه چې له ژبنیو ځېلونو سره کار لري (typology).

ځېلي (ǰelí) ص. نر.م. ښځ.م. ۱) ضدي، اړیمار، سرتمبه، سرتمبه، جېلي؛ ۲) جاهل، کم عقله، ناپوه.

ځېلی (ǰeláy) ښځ.م ۱) زیری، کجیران؛ ۲) کجران یو ډول ناروغي ده چې تر پوست لاندې ګرد او غونډ شیان چې دانو ته ورته وي پیدا کېږي.

ځینار (ǰinắr) نر.م. وگ. زنار.

ځینګر (ǰingár) نر.م. زینګر، ګڼ، ګور.

ځینه (ǰiná) ښځ.م. زینه، پوړی، پایه، پارځنګ.

ځیني (ǰíne) ص. نسب. ۱) بعضې، ځنې؛ ۲) ا. ورځخه، ورنه، تري، ترینه.

# څ

**څ** (cc) ښځ.م.د پښتو الفبې یوولسم توری دی.

**څا** (cā) ښځ.نر.م. (ج. څاګانې) کوهی، څاه.

**څاباڼی** (cābā́ṇay) ص. نر.م. څاپاڼی، پرېوتو ته نیږدې، غورځېدونکی، لوېدونکی.

**څابونک** (cābūnák) نر.م. د یوه بوټي څګ دی چې جامې پرې مینځل کېږي.

**څاپاکی** (cāpā́kay) ص. څاه پاکوونکی.

**څاپېره** (cāpéṛa) ښځ.م. څپره، څپېره، چاپېره.

**څاڅکی** (cāckáy) نر.م ۱) تڅکی، قطره، څڅواکی؛ ۲) خوږوالی، قدرمني، ګرانښت، مینه لرل.

**څاڅکی څاڅکی** (cāckáycāckáy) ق. تڅکی تڅکی قطره قطره.

**څاڅوکی** (cācūkáy) نر.م. وړوکي څاڅکی، وړه قطره، د څاڅکي تصغیر.

**څاڅېروکی** (cāccrūkáy) نر.م. ګګرکی، ګله ګرکی، د واورو کوچنی دانې، برنجک.

**څادر** (cādár) نر.م. (ج. څادرونه) ۱) دوپټه، پټو، چکاله؛ ۲) چادر، اهن چادر.

**څادرلوندی** (cādarlū́nday) نر.م. ښورمک، لږباران، ښورمه

**څادري** (cādarí) ښځ.م. ۱) چادري، بورقه، بورکه؛ ۲) ص.نب. د څادر، په څادري پورې اړوند.

**څار** (cār) نر.م. ۱) تلاش، لټون؛ ۲) مراقبت، ساتنه، څارنه.

**څارا** (cārā́) ښځ.م. (ج. څاراګانې) کیندل شوې ځای چې تېږ، ګازرې او... په کې ساتل کېږي.

**څارڅرخومه** (cārcarxū́ma) ښځ.م. ګرد چاپېره، چارچاپېره، شا وخوا، څلورخواوې.

**څارځی** (cārǰáy). څارتون، رصد خانه، زیج.

**څارښکه** (cārəṣká) ښځ.م. څرښکه، سارکه؛ د یوې مرغۍ نوم دی.

**څارل** (cārə́l) مص. مت. په نظر کې ساتل، په پټه د چا مراقبت کول، څاوکونه.

**څارنتون** (cārantū́n) نر.م. د وترنرۍ ریاست.

**څارند** (cārə́nd) ص. نر.م. کنټرولر، ثبتوونکی.

**څارندوی** (cārandóy) نر.م ۱) پولیس، امنیتي عسکر ۲) څارکوونکی؛ ۳) سکوټ، سکاوټ هغه څوک چې په څارندویي کې شامل وي.

**څارندویي** (cārandoyí) ښځ.م. د اخلاقي او سپورتي تعلیم او تربیې یو ډول سیستم دی.

**څارنوال** (cāranwā́l) ا. مدعي العموم، د تورنو رسمي حقوقي مدافع.

**څارنه** (cārə́na) ښځ.م. (ج. څارنې) په نظر کې ساتنه، څوکۍ کونه، مراقبت کونه..

**څارو** (cārū́) ص. نب ۱) څارونکی، څاری، مراقبت کوونکی، تعقیبوونکی؛ ۲) جاسوس.

**څاروان** (cārwā́n) ص. جوپه مشر، د کاروان میر.

**څارونکی** (cārūnkáy) فا. نر.م. په نظر کې ساتونکي، څوکۍ کوونکی، تعقیبوونکی.

**څاروی** (cārwáy) نر.م. (ج. څاروي) هغه څلور بولی چې څرکوي او وابنه خوري.

**څاره** (cārá) ښځ. م. (ج. څارې) ۱) چاره، علاج؛ ۲) کسب، کار؛ ۳) هغه کنده او ډوغل چې ګني په کې اینبودل کېږي.

**څاړ** (cāṛ) نر.م. د لم یا غوښې هغه ټوټه چې د لېوه تر حملې وروسته په څاړزی.پسې څړېږي.

**څاړو** (cāṛū́) نر.م. (ج. څاړوګان) ۱) برغ، برغې، برنغ، د نس پرده؛ ۲) دحیوان هغه غوښه چې ځینې د خوړو ور نه بولي.

**څاړی** (cāṛáy) نر.م. (ج. څاړي) ۱) دوښېنتانو د تویېدلو ناروغي؛ ۲) څوړی، یو ډول خړ رنګې حلاله مرغۍ ده .

**څاږ** (cāẓ) نر.م. د وینې پور د وینې بیه، خون بها.

**څاښت** (cāṣt) ق. ۱) کچه غرمه، برېځر؛ ۲) نر.م. ښت، تاشت، لیکلی کاغذ دی چې مقدسه محتوا لري او د مذهبي خلکو له خوا ناروغانو ته ورکول کېږي..

**څاښتی** (cāṣtáy) نر.م. دغرمې خوراک، د غرمنۍ، د غرمې زړخوړي، څاښت ناری.

**څاښتي** (cāṣtí) ص. نب. غرمنی، د غرمې، د څاښت، په څاښت پورې تړلی.

**څاښکه** (cāṣká) ښځ.م. (ج. څاښکې) سارکه، څرښکه، ګنډسېره، یو ډول مرغۍ ده.

**څاښه** (cāṣá) ښځ.م. (ج. څاښې) تاوکړې سنۍ، اینځي، انځي، غبنتلې پړی.

**څاښی** (cāṣáy) نر.م. دڅرخې محور، څوښه.

**څاک** (cāk) نر.م. (ج. څاکونه) ۱) درز، چاک؛ ۲) نیم سری؛ د سر یو ډول درد دی.

**څاکن** (cākə́n) ص. نر.م. ۱) څڅېدونکی، ترشح کوونکی؛ ۲) څاه ایستونکی، څاه باسونکی؛ ۳) دسیسه کار.

**څاکه** (cāká) ښځ.م. (ج. څاکې) ۱) د غره تېره څوکه؛ ۲) دڅادر پیڅکه، د څادر څنډه.

**څاکی** (cākáy) نر.م. (ج. څاکي) د څادر پیڅکه، د څادر څنډه، د څادر پیڅه.

**څاګله** (cāgalá) ښځ.م. ساګلی ،ساګله، پتیله، د ارتې خولې دیګچې.

**څاګوړی** (cāgúṛay) نر.م. ډینګری، څاګی، ورکوټې کوهی، وړه څاه.

**څاګی** (cāgáy) نر.م. څاه ګی، وړه څاه.

**څاله** (cā́la) ښځ.م. څپر، څپرۍ، کوډلۍ، کوډۍ، هغه ساله او کوډۍ چې د پټي د فصل د ساتلو لپاره جوړېږي.

**څانډو** (cānḍū́) نر.م. ساندو، باجه، دخښینې میړه.

**څانګ** (cāng) نر.م. ۱) وزر، شاهپر؛ ۲) ښاخ، شاخ، خاخ، څانګه.

**څانګ څانګ** (cā́ngcā́ng) ق. ښاخ ښاخ؛ وزر وزر.

**څانګو** (cāngū́) نر.م. ۱) دغرکې موټی، د څک موټی؛ ۲) د منداړو تناو، د غرکې تناو.

**څانګوال** (cāngawā́l) ص. د څانګې (مسلک) خاوند، ماهر.

**څانګور** (cāngawā́r) ص. وزروال، ګړ اړخیز.

**څانګورتوغندی** (cāngawartoğandáy) ا. وزروال توغندی، راکټ.

**څانګوړی** (cāngūṛáy) ښځ. م. ۱) وړه څانګه، ورکوټی ښاخ؛ ۲) نر.م. وړوکی وزر.

**څانګه** (cā́nga) ښځ. م. (ج. څانګې) ۱) درد، بربښ، څریکه؛ ۲) ښاخ؛ ۳) شعبه، اداره؛ ٤) نېزه، بلمه؛ ٥) ښځینه شخصي نوم.

**څانګې څانګې** (cā́ngecā́nge) ص. نسب. ښاخ ښاخ، برخې برخې، شعبې شعبې.

**څانګې وانګې** (cā́ngewā́nge) ص. نسب. ۱) ښاخ ښاخ؛ ۲) توټې توټې؛ ۳) ګډوډ؛ ٤) سست، لټ، تنبل.

**څاڼی** (cāṇáy) نر.م. دربېل شویو غنموله پټي څخه د وږیو ټولونکی.

**څاو** (cāw) نر.م. ۱) څارنه، مراقبت؛ ۲) په ژمي کې د ګازرو، منګړیتو او... دساتلو لپاره تر ځمکې لاندې ژور کړی ځای.

**څاوار** (cāwā́r) نر.م ۱) مصنوعي ربښتان، څاواره ۲) دپغلې یو ډول ګانه؛ ۳) ځینې ښځې له سر وېښتانو سره د وړیو تارونه تړي او خپلې کلې په کې ځوړندوي.

**څاوټی** (cāwtáy) نر.م. څاپښتی، نیم سری.

**څاه** (cāh) نر.ښځ.م. وګ. څا.

**څبله** (cábla) ق. څبله، یو تربله، په خپلو کې.

**څپ** (cap) نر.م. (ج. څپونه) ۱) د پښې د ښکالو اواز؛ ۲) دغلې د پاکولو اواز.

**څپا** (capā́) ښځ.م. د پښو اوازونه.

**څپاری** (capāráy) نر.م. ۱) څپرکی، څپری، څاپولی، د واورې توټه؛ ۲) یوه لپه اوبه.

**څپاړو** (capāṛū́) ص. نب. د نسه، ریخن.

**څپاړه** (capāṛá) ښځ.م. دست، ریخ، اسهال.

**څپان** (capā́n) نر.م. (ج. څپانونه) د اوبو تړیان.

**څپاند** (capā́nd) ص. نر.م. ج. څپې وهونکی، هغه سیند یا دریاب چې څپې وهي.

**څپاڼ** (capā́ṇ) نر.م. کتار، قطار، صف، چیل.

**څپاڼی** (capāṇáy) ص.نر.م. ګډوډ، پرېشان.

**څپټی** (capaṭáy) نر.م. (ج. څپټي) پوستنی، پاستی، چپاتی، لویه او نرۍ ډوډۍ.

**څپڅپانی** (capcapā́nay) ص. نر.م. ۱) تار په تار، ګډوډ؛ ۲) کریاب، اړ؛ ۳) نر.م. د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**څپڅپی** (capcapáy) نر.م. (ج. څپڅپي) لوی غلبېل، پرویزی، چڃ.

**څپر** (capár) نر.م. (ج. څپرونه) ۱) وګ. چپری؛ ۲) خونه، ځاله، څپری؛ ۳) دغره پرسر اواره ځمکه؛ ٤) توک، دډوډۍ توټه؛ ٥) د بام ججه.

**څپرغوږی** (capargwáẓay) ص. نر.م. ۱) غوږور، پلن غوږی؛ ۲) نر.م. هاتي، فیل.

**څپرکی** (capárkay) نر.م. (ج. څپرکي) ۱) توک، د ډوډۍ توټه؛ ۲) د کاڼي یا لرګي توټه؛ ۳) د واورې پاغونده، څپری؛ ٤) حصه، برخه، فصل، باب.

**څپری** (capáray) نر.م. (ج. څپري) ۱) جلا شوې توته؛ ۲) دواورې پاغونده؛ ۳) د غره په سر اواره ځمکه؛ ٤) کوچنی د ختو ډنډ.

**څپرۍ** (caparáy) ښځ.م ۱) څپر، کوډله؛ ۲) دآس له وېښتانو څخه جوړه شوې ګانه چې د تندې د پاسه یې ځړونده وي.

**څپړ** (capár) نر.م. ۱) د اوښ یا فیل د پښې تلی؛ ۲) د سړي د پښې پلن تلی؛ ۳) څپېړه، یو غرنی بوټی دی؛ ٤) څپېړه، څاپېړه.

**څپړاخه** (caparáxa) ښځ.م. چاپېړه، چپلاخه، څپلاخه، څاپېړه، څپېړه، څپېړ.

**څپړدخ** (capardáx) نر.م. مېرګاټې، ګاټې، د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**څپړغوږی** (capargwázay) ص. نر.م. و.ګ. څپر غوږی.

**څپړکی** (capárkay) نر.م. څپک، څپق، د څلورو ګوتو په اندازه.

**څپړور** (caparawár) ص. نر.م. د لویو پښو خاوند.

**څپړی** (capráy) نر.م. د پښې رګ په څېر یو ډول وابښه دي.

**څپړۍ** (capaṛáy) ښځ.م. ۱) د توپ ډنډې ډنډه؛ ۲) داوړې راښپلک؛ ۳) ښځ.م.ج. څپلۍ، کېړۍ، کېړۍ؛ ٤) ښځ.م. تاپوړی، ډانګوری، هغه لرګی چې ګوډ یې ګرځېدو لپاره تخرګ لاندې نیسي.

**څپښه** (capə́ṣa) ښځ.م. ۱) څپلکه، چپلکه، زړه پنه یا بوټ؛ ۲) لتکه.

**څپک** (capák) نر.م ۱) د ډوډۍ توکړه؛ ۲) څپړکی، څپق، د لاس د څلورو نښتو ګوتو په اندازه.

**څپکه** (capə́ka) ښځ.م. رېبده، د ډوډۍ پخولو یوه آله ده.

**څپکی** (capakáy) نر.م. قمار، جواري، شرط.

**څپل** (capál) نر.م. ۱) د مرغانو د وزرونو ترپېدنه؛ ۲) چوپل؛ ۳) څپ کونه، چپې کونه.

**څپلاخه** (capláxa) ښځ.م. و.ګ. څپړاخه.

**څپلاک** (caplák) ص. نر.م.ج. ۱) ګڼ، ګور؛ ۲) ګونجلک، ګونځې؛ ۳) ګموړ؛ ٤) کېمنډلی ۵) خوږولی، کږولی.

**څپلک** (caplák) نر.م. ۱) هغه څه چې د زړښت له امله کلک شوی وي لکه څرمن؛ ۲) د پښو کولو هغه شی چې د زړښت له امله وچ، سخت او تنګ شوی وي لکه زړه پنه، وچه څپلۍ.

**څپلکې** (capláke) ښځ.م. چپړکې، چپلکې، د پلاستیک یا څرمنې څپلۍ.

**څپلور** (caplór) ص. نر.م. د اوږدو پښو خاوند.

**څپلۍ** (caplə́y) ښځ.م. ۱) رېړۍ، کېړۍ؛ ۲) له دروزې، مزرې یا څرمنې څخه جوړ د پښو کولو شی؛ ۳) د نېزه بازۍ مېخ چې د سپاره په وسیله په نېزې سره وهل کېږي؛ ٤) د څپر د پاسه اچول شوې څنګل؛ ۵) تاوراتاو، منجیله.

**څپلۍ ګنډ** (caplə́ygand) نر.م. د ډاکټر د راوستلو فیس، یا د چا د راوستلو او کارکولو مزد.

**څپڼ غوږی** (capaṇgwázay) نر.م. د غوږ نرمی، د غوږ پستکی، د غوږ بوڅکی.

**څپڼۍ** (capaṇə́y) ښځ.م. ۱) د کونډې مرتۍ، مرتانه، د کونډې هغه برخه چې بزګر د بیوې کولو په وخت کې لاس ورباندې ږدي؛ ۲) پانه، سپېته، شپېته، چنې، سپېته.

**څپنزری** (cpanzáray) نر.م. څنزری، تنزری، تیهو، دراج، چنجری، یو ډول مرغه دی.

**څپوټکی** (caputákay) نر.م. څپوټی، کوچنی دوټه، ووړکې لوټه، ورکوټی زوږکی.

او بلې خوانه يې د ټولنې افراد يا د خلکو يوه ډله وي ، لکه زکات ورکول.

**حقانه** (haqānā́) ق. عادلانه ، په حقه ، په سمه.

**حقاني** (haqānī́) ص.نب. ۱) حق ته منسوب ، رښتياني ، له حق او عدالت سره سم ؛ ۲) مج. له حقه نه تېرېدونکی.

**حقانيت** (haqāniyát) نر.م. پرحقوالی ، رښتينتوب

**حقايق** (haqā yíq) نر.م. حقيقتونه ، واقعيتونه.

**حق بين** (haqbín) ص. نر.م. رښتيا ويونکی ، باانصافه ، حق ليدونکی ، حق کتونکی.

**حق پرست** (haqparást) ص. نر.م. حق بين ، په حق ولاړ ، د حق پلوی ، حق پال ، حقمل.

**حق تلفي** (haqtalafí) ښځ.م. حق تر پښو لاندې کونه ، پر حق سترګې پټونه ، حق خوړنه.

**حق حيران** (haqhayrā́n) ص. نر.م. هک پک ، اک پک ، اريان دريان ، حيران ، حق اريان.

**حقدار** (haqdā́r) ص.نر.م ۱) دحق خاوند ، حقمن ، حق لرونکی ؛ ۲) مستحق ، وړ.

**حقدوست** (haqdóst) ص.نر.م. ۱) د حق ملګری ، حق پلوی ؛ ۲) نر.م. و.ګ. ځرګه.

**حق شناس** (haqšinā́s) ص.نر.م ۱) حق پېژندونکی حق پېژاند ، حق پالونکی ؛ ۲) مج. شاکر ، څوک چې د بل ښېګنو حق نه هېروي.

**حق ګوی** (haqgóy) ص.نر.م. رښتيا ويونکی ، رښتينی ، حق ويونکی.

**حق ناحق** (haqnāháq) ق. بې موجبه ، بې سببه ، بې علته ، غير حق ، وچ په وچه ، بې دليله.

**حقوق** (hoqū́q) نر.ج. ۱) حقونه ، دحق جمع ؛ ۲) تع. د يوه دولت ټاکليو مقرراتو او قواعدو جونګ ؛ ۳) هغه علم چې پر وضع شوو قوانينو بحث کوي ؛ ٤) د يوه مامور د کار اجرت.

**حقوقي** (huquqí) ص. نر.م. د حقوقو ، د حق ، د حق په هکله ، په حقوقو اړوند.

**حقه** (haqá) ص. نب. ۱) دحق ؛ ۲) قانوني ، اصولي پر ځای ؛ ۳) پر حق برابر ، رښتياني ؛ ٤) د مخ ښځينه شکل ؛ ۵) ښځ.م. چتر ، کسواټ ، څلور کلن اوښ ؛ ۶) قطی ، ډبلی.

**حقير** (haqír) ص. نر.م. ۱) خوار ، ذليل ، زبون ؛ ۲) وړوکی ، صغير ؛ ۳) بې قدرته ، بې ارزښته.

**حقيقت** (haqiqát) نر.م. (ج. حقيقتونه ، حقايق) ۱) رښتيا ، واقعي ؛ ۲) فق. واقعيت لرونکی.

**حقيقتاً** (haqiqatán) ق. په رښتيا سره ، واقعاً.

**حقيقي** (haqiqí) ص. نب. ۱) رښتونی ، په حقه ، په رښتيا ، واقعي ؛ ۲) د خطا ضد.

**حک** (hak) نر.م. ۱) توږنه ، ګرونه ؛ ۲) سولونه ؛ ۳) کيندنه ، کنستنه.

**حکاک** (hakā́k) ص.نر.م ۱) کيندونکی ؛ ۲) مهر جوړوونکی ؛ ۳) ځيرک ، هوښيار.

**حکايت** (hikāyát) نر.م. (ج. حکايتونه) کيسه ، نکل ، داستان ، سرګذشت.

**حکم**(۱) (hokám) نر.م. امر ، فرمان ، دستور.

**حکم**(۲) (hakám) نر.م. ۱) منځګړی ، درېمګړی ، ثالث ، قاضي ؛ ۲) ريفري.

**حکم**(۳) (hikám) نر.م. ۱) د حکمت جمع ؛ هغه وړ جمله چې يو بشپړ فکر پکې څرګند شوی وي.

**حکمت** (hikmát) نر.م. ۱) پوهه ، هوښياري ، علم ، فلسفه ؛ ۲) حلم ؛ ۳) عدل ؛ ٤) مهارت ؛ ۵) حق ، رښتينتوب ، سموالی.

**حکمتي** (hikmatí) ص. نب. ۱) د حکمت خاوند ، پوه ، ماهر ؛ ۲) مج. چلي ، چمباز ، ټګ.

**حکمران** (hokumrā́n) نر.م. ۱) واکوال ، حکم چلوونکی ، حکم کوونکی ؛ ۲) لوی ولسوال.

**حکمي** (hokmí) ص. نب. ۱) د حکم، د امر، د فرمان؛ ۲) جبري.

**حکميت** (hakamiyát) نر.م. منځګړيتوب، منځګړتيا، درېمګړتيا، وساطت.

**حکومت** (hukūmát) نر.م. ۱) واکمني، حکم کونه فرمان چلونه؛ ۲) حکومت، اجرائيه قوه، د وزيرانو هيئت؛ تع. د ټولو هغو سازمانو ټولګه چې د يوه هېواد چارې اداره کوي.

**حکومتي** (hukūmatí) ص. نب. ۱) دحکومت، په حکومت اړوند؛ ۲) ښځ.م. د اولسوالۍ اداره؛ ۳) د نائب الحکومه دکېناستو ځای.

**حکيم** (hakím) ص. نر.م. ۱) پوه، دانا، د حکمت خاوند؛ ۲) يوناني طبيب.

**حکيمانه** (hakimāná) ق. ۱) عالمانه، عاقلانه؛ ۲) مج. فيلسوف مابانه، غير علمي.

**حکيمي** (hakimí) ښځ.م. ۱) يوناني طبابت کونه؛ ۲) پساري توب.

**حل** (hal) نر.م. ۱) د غوټې خلاصونه؛ ۲) حلونه، حلول؛ ۳) په اوبو کې د يو شي حلونه؛ ٤) ويلې کول؛ ٥) فيصله، خلاصونه.

**حلاج** (halā́j) نر.م. پنبه ټکوونکي، نداف.

**حلاجي** (halājí) ښځ.م. ۱) الاجي، پندانه له پوښې بېلونه؛ ۲) پومبه ټکونه، ندافي؛ ۳) چغنی، جواز، ګېنۍ، ګانۍ.

**حلال** (halā́l) ص. نر.م. ۱) روا، جايز، پر شرع برابر؛ ۲) مج. ذبح کول؛ ۳) خلاصوونکی، پرانستونکی، دغوټې يا عقدې خلاصوونکی.

**حلالي** (halālí) ص. نب. ۱) حلالونی، د حرامي ضد؛ ۲) مج. صالح، نېک عمله.

**حلالول** (halālawə́l) مص. مت. ۱) رواکول، رواګڼل، جايزول؛ ۲) ذبح کول، کوتل، کوتل.

**حلالېدل** (halāledə́l) مص. ل. ۱) رواګڼل کېدل، جايزېدل؛ ۲) ذبح کېدل، کوتل کېدل.

**حلاوت** (halāwát) نر.م. خوږوالی، خوږلني.

**حلبي** (halabí) ص.نب. ۱) حلب ته اړوند، د حلب؛ ۲) حلب، نازکه فلزي پاڼه ده.

**حلبي جوړوونکی** (halabíjorawū́nkay) فا. نر.م حلبي ساز، هغه څوک چې حلبي لوښي او شيان جوړوي، ټټار.

**حلف** (half) نر.م. قسم خوړنه، لوړه کونه.

**حلق** (halq) نر.م. ستونی.

**حلقوم** (holqū́m) نر.م. وچه غاړه، وچه مرۍ.

**حلقوي** (halqawí) ص.نب. د حلقې، د کړۍ، د الغې، الغه ډوله.

**حلقه** (halqá) ښځ.م. ۱) کړۍ، الغه، غېښکی؛ ۲) لومه؛ ۳) ګروپ.

**حلقه بګوش** (halqabagóš) ص. نر.م. ۱) منه دی غوږی مريی؛ ۲) مج. غلام، مريي، بنده.

**حلم** (hilm) نر.م. زغم، سهه، سهنه، حوصله، زغمنه، نرمتوب.

**حلوا** (halwā́) ښځ.م. ۱) شيريني؛ ۲) يو ډول خواږه دي؛ ۳) چيت پيت شوی شی.

**حلوايي** (halwāyí) ص. نر.م. خواږه جوړوونکی، شيريني پخوونکی، روښوال، الوايي.

**حلول**[1] (halawə́l) مص. مت. ۱) حل کول، په مايعاتو کې يو شی مخلوطول؛ ۲) فيصله کول، حل او فصل کول؛ ۳) ويلې کول.

**حلول**[2] (hulū́l) نر.م. ۱) داخلېدنه، کوم ځای ته ننوتنه؛ ۲) راتلنه، شروع کېدنه، پيلېدنه؛ ۳) ښکارندېدنه، ښکاره کېدنه، رارسېدنه.

**حليم** (halím) ص. نر.م. ۱) سهاند، بردباره، زغمونکی، نرم؛ ۲) يو ډول خواږه دي.

**حماست** (hamāsát) نر.م. زړورتیا، زړورتوب، شجاعت، حماسه.

**حماسي** (hamāsí) ص. نسب. د زړه ورتوب، د شجاعت، د توري، د میړانې، د حماست.

**حماقت** (hamāqát) نر.م. بېعقلي، ناداني.

**حمال** (hamā́l) فا.نر.م. جوالي، پنډي، پلنډي.

**حمام** (hamā́m) نر.م. لمباځی، لمبل ځای، لمبېځ.

**حمامي** (hamāmí) نر.م. د حمام ساتونکی (حمام تودوي او له مراجعینو څخه پیسې ټولوي).

**حمایت** (himāyát) نر.م. ساتنه، دفاع کونه، سیله، ننګه، حمایه، پلوي.

**حمد** (hamd) نر.م. ستاینه، ثنا صفت د خدای جل جلاله ستاینه.

**حمل** (haml) نر.م. ۱) بار، وری، غوندی، اندی؛ ۲) بلاربوالی.

**حمل** (hamál) نر.م. وری، د لمریز کال لومړنۍ میاشت.

**حمل و نقل** (hamlunaqál) نر.م. ۱) ترانسپورټ، د باروړلو وسایل؛ ۲) لېږد چاری، بارچلونه.

**حمله** (hamlá) ښځ.م. برید، یرغل، هجوم، چپاو.

**حمیت** (hamiyát) نر.م. ننګه، ننګ، غیرت، مروت، ځوانمردي، میړانه.

**حمیت مند** (hamiyatmánd) ص.نر.م. ننګیالی غیرتمند، غیرتي، ننګي.

**حمید** (hamíd) ص. نر.م. ۱) ستایلی؛ ۲) غوره؛ ۳) نوم، اسم؛ ٤) د پښتو ژبې شاعر چې په حمید ماشوخېل سره شهرت لري.

**حنا** (hinā́) ښځ.ج. نکریځې، اترنګ، نکریزې.

**حنايي** (hināyí) ص. نب. نکریزي، ژېړ وزمه سور.

**حنجره** (hanjara) ښځ.م. کومی، د کرنکي او ستوني تر منځ یوه برخه.

**حنظل** (hanzál) نر.م. مرغونې، کاکوړه، منفوزې، د ابوجهل هندوانه.

**حنيف** (haníf) نر.م. د حق لېوال، حق ته ورمات، په عقیده او دین کې سم، پر دین ولاړ.

**حواري** (hawārí) نر.م. ۱) خوږ ملګری؛ ۲) د پیغمبر ملګری؛ ۳) مرستندوی.

**حواس** (hawā́s) نر.ج. د حاسې جمع یعنې مدرکه قوه، د حس قوه، د ادراک قوه.

**حواشي** (hawāší) ښځ.م. ۱) څنډې، غاړې، کنارې، حاشیې؛ ۲) لمن لیکونه.

**حواله** (hawālá) ښځ.م. ۱) څوک یا څه د چا په واک کې ورکول، یا د چا پر غاړه اچول؛ ۲) اق. ۱ - اډر، آرډر، فرمایش.

**حوت** (hūt) نر.م. ۱) کب، ماهي؛ ۲) د هجري شمسي کال دوولسمه میاشت.

**حوره** (hū́ra) ښځ.م. ۱) تور سترګې؛ ۲) د جنت ښځه (حور)؛ ۳) مج. ډېره ښکلې، خوراحسين او ښایسته.

**حوزه** (hawzá) ښځ.م. ۱) ناحیه، سیمه، علاقه، ونډ؛ ۲) هغه ځای چې ځانګړې جغرافیایي شرایط ولري؛

**حوصله** (hawsilá) ښځ.م. ۱) زغم، صبر، تحمل؛ ۲) ججوره، جاغور، د چرګ ججوره.

**حوض** (hawz) نر.م. ډنډ، تلېر، ځلبر، ترېلی، هوډ، خړیج، وسته، جوړ، تالاو.

**حوضچه** (hawzčá) ښځ.م. ډنډوکی، ووړکی ترېلی، وړوکی جوړ، تالاوګی، جوړګی.

**حول** (hawál) نر.م. چپي کېدل، چپکتوب، چپک والی، د سترګو لوڅوالی.

**حول** (hawl) نر.م. ۱) بېرته راګرځېدنه؛ ۲) کال؛ ۳) وس، قوت؛ ٤) چاپېر، چارچاپېر.

**حوېلۍ** (hawelə́y) ښځ.م. ۱) انګړ؛ ۲) کور، منډو، غولی؛ ۳) استوګنځی، هستوګنځی، مېنه.

**حي** (hay) ص. نر.م. ژوندی، ژوی، د مړي ضد.

**حې** (he) ښځ.م. د (ح) توري تلفظ.

**حيا** (hayā́) ښځ.م. شرم، پرده، وايه، ادره.

**حيات** (hayā́t) نر.م. ژوند، ژواک، ژوندون.

**حياتي** (hayātí) ص. نب. د ژوند، د حيات، د ژواک، ژواکيز، له حيات سره تړلی.

**حيث** (hays) نر.م. ۱) ځای، مکان؛ ۲) سبب، علت، کبله؛ ۳) نظر، اړخ، پلو، ليدتوګه.

**حيثيت** (haysiyát) نر.م. ۱) وضع، جهت؛ ۲) اعتبار، ابرو، شان.

**حيدر** (haydár) نر.م. زمری، لنډی، مزری.

**حيران** (hayrā́n) ص. نر.م. ج. ۱) اريان، هک پک؛ ۲) سرګردان، لالهانده؛ ۳) بې وزله.

**حيرانتيا** (hayrāntyā́) ښځ.م. حيراني، هک پک تيا، حيرت، تعجب، هک پک والی.

**حيرانول** (hayranawə́l) مص. مت. اريانول، ايريانول، هک پک کول؛ اېښول.

**حيز** (hiz) ص. نر.م. ايز، ايزک، نربنځی، ايجړا.

**حيض** (hayz) نر.م. بې لمانځي، د ښځو مياشتنی ناروغي.

**حيضه** (hayzá) ښځ.م. هغه ښځه چې د حيض په حال کې وي.

**حيف** (hayf) نر.م. ۱) ظلم، بې انصافي، تېری؛ ۲) اوسېلی، اُف، اوف، افسوس، ارمان.

**حيله** (hilá) ښځ.م. مکر، فرېب، چل.

**حيله باز** (hilabā́z) ص. نر.م. چلباز، مکار.

**حيوان** (haywā́n) نر.م. (حيوانات) ۱) ژوی، ساکښ، هر ناطق يا غير ناطق ساکښ موجود؛ ۲) مج. بې ترتيبه، بې تميزه.

**حيوانتوب** (haywāntób) نر.م. ۱) حيوانيت؛ ۲) مج. بې ترببې والی، بې تميزي، وحشت.

**حيوان شناسي** (haywānšināsí) ښځ.م. ژوی پېژندنه، حيوان پېژندنه، زولوجي.

**حيواني** (haywāní) ص. نب. د حيوان، د ژوي، د ساه کښ، په حيوان اړوند، په حيوان مربوط.

**حيوي** (hayawí) ص. نب. ۱) د ژوند، د ژوندانه، د ژواک، ژوند ته منسوب؛ ۲) ژوندی.

**حيه** (hayá) نر.م. ۱) د حي مونث، ژوندۍ، ژوند لرونکې؛ ۲) مار، منګور.

# خ

**خ** (xe) ښځ.م. د پښتو الفبې دیارلسم توری چې ابجدي ارزښت یې «۶۰۰» دی.

**خا** (xā) ښځ.م. ۱) د ناولو اوبو ارهټ، مردار ډنډ، د ناولو اوبو خندق؛ ۲) ښه.

**خاپ** (xāp) نر.م. (ج. خاپونه) وګ. خپ.

**خاپوړت** (xāporát) نر.م. هغه حیوان چې ګېډه یا نس یې د تګ په وخت کې ځمکه لګېږي.

**خاپوړن** (xāporán) ص.نر.م. خاپوړې کوونکی، په خاپوړو تلونکی.

**خاپوړې** (xāpore) ښځ.ج. خاپوړښې، خپوړې.

**خاتم** (xātím) فا.نر.م. ۱) بشپړوونکی؛ ۲) نر.م. ګوته، مُهر؛ ۳) پای، اخیر، ختم.

**خاتمه** (xātimá) ښځ.م. ۱) ختم، پای، انجام؛ ۲) عاقبت، د یوه کار وروستی نتیجه.

**خاتوری** (xātoráy) ښځ.م. دمتوره، داتوره، دالتوره، یو ډول زهرلرونکی بوټی دی.

**خاتوری** (xátoray) نر.م. شفتالو، شوتالو.

**خاته** (xātá) نر.ج ۱) جګېده، پورته کېده، لوړېده؛ ۲) ښځ.م. د کتابچې کرښې؛ ۲) پراک، د ښېړیو یو ډول لویه ده.

**خاټول** (xātól) نر.م. ج. غاټول، لاله، ... ندی ګل، شوندی ګل، غانټول، د کورنۍ یو ګل دی.

**خاچوپوچ** (xāčopúč) ص. نر.م. بېکاره شیان، خراب شیان، مات وګوډ شیان.

**خاچونی** (xāčúnay) نر.م. بلبل، عندلیب، چونی.

**خادم** (xādím) فا.نر.م. ۱) خدمتګار، خدمت کوونکی؛ ۲) نوکر، چاکر.

**خادمه** (xādíma) ښځ.م. خدمتګاره، خدمه، نوکره.

**خادمه** (xādamá) ښځ.م. کربوری، غرنۍ شلنه.

**خاده** (xādá) ښځ.م. (ج. خادې) لکړه، پایه، اوږد او ځه پنډ لرګی، رښېره، د کانۍ یا د لرګي تخته چې په قبرونو کې د شناختې په ډول نصبېږي.

**خار** (xār) نر.م. ۱) مڅوز، اغزی، غنه؛ ۲) مج. غنه، خلل، وټ.

**خارا** (xārā́) ښځ.م. ۱) خاره، یو ډول پخوانی وربښمین ټوکر؛ ۲) کلکه ډبره، سخته ډبره.

**خارانی** (xārānáy) نر.م. د سویل باد، د جنوب شمال، د مني باد، د سهیل باد.

**خارپوځه** (xārpóca) ښځ.م. و.گ. خاړپوځې.

**خارج** (xāríj) ص. نر.م. ۱) د باندې، بهر، د باندینی، ورشنی؛ ۲) وتلی، وبښکل شوی.

**خارجول** (xārijawə́l) مص.مت ۱) ایستل، شړل؛ ۲) ورشنې ایستل، ورچنې ایستل.

**خارجي** (xārijí) ص.نب. خارجه، باندېنی، بهرنی، بیدیانی، د بل هېواد.

**خارجېدل** (xārijedə́l) مص.ل. ۱) وتل؛ ۲) شړل کېدل.

**خارجېده** (xārijedə́) نر.ج. ۱) واته، بهرته تله، د باندې تله؛ ۲) ایستل کېده، شړل کېده.

**خارخوتۍ** (xārxutə́y) ښځ.م. گرداب، ول، اوبگرځنی، خارخوړۍ، گڼې.

**خارخوړۍ** (xārxuṛə́y) ښځ.م ۱) و.گ. خارخوتۍ؛ ۲) وړې وړې شېلې، وړې کندې؛ ۳) پټ غار، پټه کنده، نامعلوم.

**خاردار** (xārdā́r) ص.نر.م. اغزن، ازغي لرونکی.

**خارش** (xāríš) نر.م. خارښت، بخار، تخمار.

**خارښتي** (xārəṣtí) ص.نب. ۱) خارشتي؛ ۲) مج. بداخلاقه، بدکاره؛ ۳) مضر.

**خارق العاده** (xāriqulʕādá) ص.نب. ۱) خارق عادت، حیرانوونکی کار؛ ۲) کرامت، معجزه.

**خارک** (xārák) نر.م. ۱) اغزکی، کوچنی ازغی؛ ۲) وچه شوې خرما چې ژېړه وي؛ ۳) د منداڼو او یا گانو چوکاټ.

**خارو** (xāró) ښځ.م. ۱) مینا، ښاروړ ۲) د چرگ تاج؛ ۳) د چرگ د پښې څلورم ښنگری.

**خاره** (xārá) ص. ښځ.م. بوره (ځمکه). نااړولې او ناکرلې (ځمکه).

**خاړپوځې** (xāṛpocé) ښځ.ج. خاپوړې، خپوړې، خاړپوسې، خړپوځې.

**خازن** (xāzín) نر.م. ۱) خزانه دار، د خزانې ساتونکی ۲) بر. مکشفه، کانډنسر.

**خازه** (xāzá) ص.ښځ.م. ۱) مړاوی، شیته، جینگړ؛ ۲) خاده، لکړه؛ ۲) خس؛ ۳) الړشی، کم شی؛ ٤) شناخته، تبی.

**خازه توب** (xāzatób) نر.م. شیته والی، جینگړ والی، جینگړتوب، د تازه والي ضد.

**خاږخاږ** (xāzxā́z) جن. خشخاش، د کوکنارو دانې.

**خاسه** (xāsá) ښځ.م. ۱) ململ، سپین ململ؛ ۲) خاصه ډوډۍ.

**خاشاک** (xāšā́k) نر.ج. ۱) خځلې، خاشې، خس؛ ۲) خشپوړې، خشاک، لرگي.

**خاشخاش** (xāšxā́š) نر.ج. خشخاش، خاږخاږ، د کوکنارو دانې.

**خاشنه** (xāšná) نر.ج. ۱) خرسین، لد، د خره لد، د خره لېوان، پرشنې؛ ۲) د لرې مرداري.

**خاشه** (xā́ša) ښځ.م. ۱) خس، خځله؛ ۲) الړشی، نوکی؛ ۳) خرسک، د کوچنیانو یو ډول ناروغي ده؛ ٤) د غوښې ټوټه، ټوټه.

**خاشه پنا** (xāšapanā́) ص.نب. سترگ وړی، وړی تړی، اروا وړی، وړ سترگی.

**خاشه کښ** (xāšakáṣ) نر.م. خس کښ، د خسک طبیب، د گونگټیو طبیب.

**خاص** (xās) ص.نر.م.ج. ۱) ټاکلی، تعیین کړی، غوره، ځانگړی؛ ۲) و.گ. مخصوص.

**خاصتاً** (xāsatán) ق. ۱) په خاص ډول، په خاصه توګه، په یوازې صورت؛ ۲) خصوصاً.

**خاصره** (xāsirá) ښځ.م. تشی، تسی.

**خاصمانه** (xāsimāná) ق. په دښمنۍ، په بدۍ، د دښمنۍ له مخې.

**خاصه** (xāsá) ص.ښځ.م. د عامه ضد؛ ځانګړی، مخصوص، یوازې، ټاکلی، معین، بېل.

**خاصه دار** (xāsadár) نر.م. هغه اجیر چې له قبایلي سیمو څخه غوښتل کېږي او د عسکر په ډول د پیسو په مقابل کې د حکومت خدمت کوي.

**خاصیت** (xāsiyát) نر.م. ۱) خوی، عادت، طبیعت؛ ۲) د کوم شي فایده او اثر.

**خاضع** (xāzí') ص.نر.م. متواضع، تواضع کوونکی، خاکسار، خاکساري، بې کبره.

**خاطر** (xāt(i,ə)r) نر.م. ۱) پاس، رعایت؛ ۲) یاد فکر، زړه، خوا.

**خاطر جمع** (xātirjáma,') ص. نب. ډاډه، پوره، خواتولی، مطمئن، بېغمه، ډوډه.

**خاطر جمعي** (xātirjamsí) ښځ.م. ډاډ ګېرنه، پوره والی، ډاډینه، ډاډ، تسلي.

**خاطره** (xātirá) ښځ.م. (ج. خاطرې، خاطرات) ۱) یادداشت، یادښت، یاد؛ ۲) مج. یادګار.

**خاکسار** (xāksár) ص. نر.م. ج. ۱) متواضع، بې کبره، بې غروره؛ ۲) هوسا، آرام، آسوده.

**خاکستردانی** (xākistardānáy) ښځ.م. ایره نۍ، ایره غالۍ.

**خاکسترک** (xākistarák) نر.م. د انګورو او انګور تاکو یو ډول ناروغي ده.

**خاکشیر** (xākšír) ګ. خاشخاشو غوندې وړې سرې دانې دي.

**خاکښوري** (xākṣorí) ښځ.م. خاکشوراني، کار، غریبي، کسب.

**خاکلی** (xākə́lay) ص. نر.م. بدرنګه، بدشکله.

**خاکنا** (xāknā́) ښځ.م. جغ. د ځمکې نرۍ تړانګې چې د دوو بحرو تر منځ پرته او دوې وچې سره نښلوي لکه د کارا تړانګه.

**خاکه** (xāká) ښځ.م. ۱) دسکرو میده ګي، د سکرو توه؛ ۲) طرح، مسوده، چوکاټ، تخلیص.

**خاکي** (xākí) ص. نب. ۱) خړ رنګی؛ ۲) خاورین.

**خاکی** (xākáy) نر.م. ۱) کوتی، کنډی، غارګړی؛ ۲) کنده، کندیل، خندق.

**خاګاه** (xāgā́h) ښځ.م. تباه کونه، بربادونه، وژنه، له منځه وړنه، له خاورو سره برابرونه.

**خاګینه** (xāginá) ښځ.م. ۱) د هګۍ د پخونې په ډولو کې یو ډول دی؛ ۲) هګۍ.

**خال** (xāl) نر.م. ۱) تکی؛ ۲) ټپی، ټاپی، خاپ؛ ۳) اعشار، اعشاریه؛ ٤) یو ډول پښتني پسول؛ ٦) هغه شنه ښبه چې تر ستنو وهلو وروسته پر پوست باندې پیدا کېږي.

**خال چیني** (xālčiní) نر.م. یو ډول انګور دي چې په کندهار کې پیدا کېږي.

**خالپوڅي** (xālpocé) ښځ.م. وګ. خاړپوڅې.

**خال خال** (xālxā́l) ص. نر.م. ج. ۱) تکي تکي، داغ داغ؛ ۲) ځای ځای، لږ لږ؛ ۳) ډلته هلته.

**خالد** (xālíd) ص. نر.م. تل، همېشنی، دایمي.

**خالدار** (xāldár) ص. نر.م. ټکیالی، چکیالی، چکې چکې، داغ داغ، دانې دانې.

**خالص** (xālís) ص. نر.م. ج. ۱) سوچه، نږه، پاک؛ ۲) حق، جریمه، نغدي جزا.

**خالصانه** (xālisāná) ق. ۱) په خاصه توګه، په خاص ډول؛ ۲) په پاک زړه.

**خالصه** (xālisá) ښځ.م. ۱) دولتي شتمني؛ ۲) دولتي ځمکه؛ ۳) بې الایشه؛ ٤) ص. نب. سوچه، نږه؛ ۵) تول‌ه.

**خالق** (xālíq) ص.نر.م. ۱) پیدا کوونکی، خلقوونکی، جوړونکی؛ ۲) د لوی څښتن تعالی له صفتو څخه یو صفت.

**خالوهنه** (xālwahána) ښځ.م. واکسین کونه، ستنې وهنه، ورښودنه، وړ پورې ترنه.

**خاله** (xālá) ښځ.م. د مور خور، توری، ترور.

**خالي** (xālí) ص. نب ۱) تش؛ ۲) خلاص، بېکاره؛ ۳) مو. بسرام، د تال ویوې درجې ته وایي؛ ٤) ښځ.م. د هفتې (شنبې) ورځ.

**خام** (xām) ص. نر.م. ج. اوم، کچه، د پا... ند.

**خامباوری** (xāmbāwáray) ص. م. ... وره، ناویسا، بېباوه، بدوینی.

**خامباوري** (xāmbāwarí) ا. بې باوري، ناباوري، بې اعتمادي.

**خامتا** (xāmtá) ښځ.م. خمتا، چیږ، کرباس.

**خامخا** (xāmaxā) ق. حتمي، ضروري، حتماً، ارو مرو، هرومرو.

**خامزوری** (xāmazúray) نر.م. خمزوری، ښاپیانګه چې د پنیر جوړولو په وخت، په شیدو کې د سیلي پر ځای استعمالېږي.

**خامسوز** (xāmsóz) ص. نر.م. شین غټ، په اور سوی، دغوښې توټه چې په اور سوې وي.

**خامک** (xāmák) نر.م. سکوی، ګل دوزي، ګل کاري، یو ډول هنري ګنډون دی.

**خامکار** (xāmkār) ص. نر.م. بې تجربې، کم تجربه، د لږې تجربې خاوند.

**خامکاری** (xāmkáray) ص.م. خامچاری، خامکار، ناتجربه کار.

**خاملتی** (xāmletáy) ښځ.م. یو محلي ترکیبي دواده.

**خاموش** (xāmóš) ص. نر.م.ج. چوپ، غلی، ارام، کرار.

**خامه** (xāmá) ښځ. م. ۱) خام سرک، خامه لاره؛ ۲) نی قلم، د کړکي قلم.

**خامه کاري** (xāmakārí) ښځ.م. دختوکار، هغه ودانۍ چې له اومو خښتو څخه جوړه شوې وي.

**خامي** (xāmí) ښځ.م. ۱) اومتوب، اومتیا؛ ۲) مج. نیمګړتیا، بې تجربګي، کمبودي.

**خان** (xān) ص. نر.م. (ج. خانان) اصلاً منګولي کلیمه ده؛ ۱) ارباب، رئیس، مشر؛ ۲) فیوډال؛ ۳) ډوډۍ مار؛

**خانتما** (xāntamā́) ص. نب. ۱) مغرور، کبرجن، خامتما، لوی چاری؛ ۲) بې پروا، بې اعتنا.

**خانجی** (xānjáy) نر.م. شهوت، ډېر شهوت.

**خانچنا** (xānčuná) ص. ښځ. م. ۱) ورانه شوې ژاوله، چخنې ژاولې، چخړی، چیختاړ.

**خانچه** (xānčá) ښځ.م ۱) و ګ. خوانچه ۲) کانچه.

**خانخاني** (xānxāní) ص.نر.م. ملک الطوایفي، فیوډالیزم، ارباب رعیتي.

**خاندان** (xānadā́n) نر.م. کهول، کورنی، کوړمه.

**خانداني** (xānadāní) ص. نب. ۱) د کورنۍ، د کهول؛ ۲) دښې کورنۍ؛ ۳) د یوې کورنۍ دننۍ خبره یا موضوع.

**خاندور** (xāndór) نر.م. لمبه، شغله، غوړنجه، شعله، هغه اور چې لمبه ولري.

**خانزاده** (xānzādá) ص. نر.م. ۱) د خان زوی، نجیب زاده؛ ۲) مج. اصیل، شریف.

**خانشین** (xānašín) ص. نر.م. په کور ناست، خانه نشین، بېکاره، پر کور ناست.

**خانقاه** (xānaqā́h) ښځ.م. خانقا، دخانګاه معرف، دشېخانو د عبادت یا اوسېدو ځای.

**خانګره** (xāngrá) ښځ.م. پخه، دسر پخه، سبوسک.

**خانم** (xānә́m) ښځ.م. مېرمن، ښځه، کده.

**خانمه** (xānә́ma) ښځ.م. مېرمنه، ماندینه، ماینه، ښځه، کده، کوروداني.

**خانواکي** (xānwākí) ا. خانخاني (نظام)، اربابي، ارباب سالاري، خانسالاري.

**خانه پوري** (xānapurí) ښځ.م. ډکونه، د جدول ډکونه، په فورمې، لیست کې ځه لیکل.

**خانه خانه** (xānáxāná) ص. نب. برخه برخه، کور کور، کوټه کوټه.

**خانه خراب** (xānaxarā́b) ص. نر.م. ۱) کور ډاګی، کور سپېري، کورراني؛ ۲) هغه څوک چې خلک په جنګ سره اچوي.

**خانه سامان** (xānasāmā́n) نر. م. خدمتګار، نوکر، ملازم، پېش خدمت.

**خاني** (xāní) ښځ.م ۱) د قبیلې مشرتوب، باداري؛ ٤) ډنډوکی، حوضچه.

**خانی** (xānáy) نر.م. د کابل په وزن له اتو سېرو یا ٥٦ کیلو سره معادل وزن.

**خانیځی** (xānijáy) ص.نر.م. خانې خانې، کوټې کوټې، خانیز، خانې لرونکی.

**خاڼی** (xā̃ṇay) نر.م. سارانی مورک، ړنده مږه.

**خاوال** (xāwā́l) نر.م. ۱) پنډ غالي، اغېل، شپول؛ ۲) د دېوال یا کمر د بېخ ډډ او خالیګاه.

**خاورپوه** (xāwarpóh) ص. نر. خاوره پېژاند، خاوره پېژندونکی، د خاوره پوهنې ځانګوال.

**خاورپوهنه** (xāwarpohә́na) ا. خاورې پېژندنه، د خاورې علم؛ و ګ. :خاوره پېژندنه.

**خاورګاډی** (xāwargā́ḍay) خاورو ګاډی یا کراچې.

**خاورګاری** (xāwargā́ray) نر.م. هغه کندوچې د خاورینو لوښو د جوړولو لپاره خاوره ځنې را ایستل شوې وي.

**خاوره** (xāwrá) ښځ.م. ۱) ځمکه، د ځمکې مخ، وچه، دلېتوسفیر طبقه؛ ۲) مج. وطن، هېواد، مملکت.

**خاوره پېژندنه** (xāwrapežandә́na) ښځ.م. (جیا.) د خاورو خواص، منشأ او له هغو ځخه د ګټې اخیستنې ځرنګوالی ځېړل.

**خاوری** (xāwráy) نر.م ۱) ځنګل؛ ۲) سپین ګل، یو ډول خاوره ده چې د رنګ استفاده ځنې کوي

**خاورین** (xāwrín) ص. نر.م. د خاورو، له خاورو او ختو جوړ شوی.

**خاورینساز** (xāwrinsā́z) ا. کومبار، کولال.

**خاوند** (xāwánd) نر.م. (ج. خاوندان) ۱) ځښتن، مالک؛ ۲) مېړه.

**خاویار** (xāwyā́r) نر.م. ج. د کب هګۍ، د ماهي هګۍ، یو مقوی او خوندور خواړه دي چې د سګ ماهي له هګۍ ځخه جوړېږي.

**خایدک** (xāydak) نر.م. و ګ. خیدک.

**خاین** (xāy(ә,e)n) ص.نر.م. خیانت کوونکی.

**خاینانه** (xāyinānә́) ق. د خیانت په توګه.

**خبا** (xabā́) ښځ.م. پټونه، الونیا کونه، غلا کونه.

**خباثت** (xabāsát) نر.م. چټلېدنه، ناولي کېدنه، ناولتوب، مردارتوب، چټلتوب، ناولتیا.

**خبث** (xubs) نر.م. ۱) ناولي کېدل؛ ۲) ناولتیا، چټلي، نجاست.

**خبث** (xabs) نر.م. ناولتیا، چټلي، نجاست.

**خبر** (xabár) ښځ.م ۱) خبره، کلام؛ ۲) نر.م. خبرتیا، اطلاع؛ ۳) ګر. محمول، مسند، پرېډیکېټ.

**خبرتیا** (xabartyā́) ښځ.م. خبرېدنه، اطلاع.

**خبرتیایي** (xabartyāy) ص. د خبرتیا اړوند، معلوماتي.

**خبرڅانی** (xabarcānay) ص. نر.م. چوغلګر، خبررسان، څری، نمام، چغلمار.

**خبرځای** (xabarǰāy) ا. د خبر سرچینه، خبري منبع.

**خبردار** (xabardār) ص. نر.م.ج. ۱) باخبره، خبر لرونکی؛ ۲) ف. احتیاط، خبر شه.

**خبرداری** (xabardāray) ښځ.م. ۱) خبرېدنه، خبرلرنه؛ ۲) باخبري؛ ۳) اخطار.

**خبررسان** (xabarrasān) ص. نر.م. ۱) استازی، قاصد، خبررسوونکی؛ ۲) جاسوس.

**خبرغل** (xabarğal) ص. نر.م. چوغلګر، نمام.

**خبرغلا** (xabarğlā) ښځ.م. دخبرې غلا کونه، خبر رسونه، چوغلي، چغلماري، چغلګوزي.

**خبرغوږی** (xabarğwāzay) ص. نر.م. مطیع، فرمانبردار، تابع، فرمان وړونکی.

**خبرګیر** (xabargír) ص. نر.م. خبراخیستونکی، أحوال اخستونکی، احوال معلوموونکی.

**خبرلوختوب** (xabarloctób) نر.م. نطاقي، خبرې کوونکی، فصاحت.

**خبرلوڅی** (xabarlócay) ص. نر.م. ۱) نطاق، فصیح؛ ۲) خبرلوڅ، هغه څوک چې په جرګو مرکو کې د خبرو صلاحیت ولري.

**خبرمزی** (xabarmázay) نر.م. تلفون، ټېلفون.

**خبروال** (xabarwāl) ص. د قاضي د دفتر لیکونکی (محرر)، منشي.

**خبرول** (xabrawə́l) مص. مت. اګاه کول، اطلاع ورکول، پوهول، اعلامول.

**خبرونه** (xabarwána) ا. خبرتیا، اګهي، ابلاغیه.

**خبره** (xabára) ښځ.م. ۱) خبر، لوز؛ ۲) واقعه، معامله، پېښه، حادثه.

**خبرې اترې** (xabarcatárc) ښځ.م. ۱) مکالمه، غږېدنه، خبرې، ړغېدنه؛ ۲) مباحثه.

**خبریال** (xabaryā́l) ص. نر.م. مصاحبه کوونکی، د خپرندوی د موسسې هغه نماینده چې خبرونه راټولوي او مصاحبې کوي.

**خبریالي** (xabaryālí) ا. ګزارشګر، خبرنګاري.

**خبرېدل** (xabaredə́l) مص.ل. ۱) اګاه کېدل، پوهېدل؛ ۲) اعلانېدل، اطلاع ورکول کېدل.

**خبریه** (xabariyá) ص. نب. د خبر، دخبر مربوط، له خبر سره تړلی، خبر ته منسوب.

**خبط** (x(ə,i)bt) نر.م. ۱) بې لارې تګ؛ ۲) په پټو سترګو یوه کار ته لاس اچونه؛ ۳) خطا وتنه.

**خبیث** (xabís) ص. نر.م. ۱) چټل، ناولی، ککړ؛ ۲) مج. شیطان، اهریمن.

**خبیر** (xabír) ص. نر.م. ۱) پوه، خبر، اګاه، دانا؛ ۲) د لوی څښتن له صفتونو څخه یو صفت.

**خپ** (xap) ص. نر.م. غلی، پټ، کرار، ارام.

**خپ خپ** (xápxap) ص. نر.م.ج. ۱) داغ داغ، ټکي ټکي؛ ۲) پټ پټ، په غلا، غلچکي.

**خپرنځی** (xparanǰáy) ا. د خپروني ځای، نشراتي مرکز.

**خپرندوی** (xparandóy) ص. و ګ. خپروونکی.

**خپرنی** (xparanáy) ص. خپرېدونکی، نشراتي.

**خپرول** (xparawə́l) مص. مت ۱) نشرول، خورول؛ ۲) تیتول، شیندل.

**خپروونکی** (xparawū́nkay) فا. نر.م ۱) خورونکی تیتوونکی؛ ۲) ژ. نشرونکی، د راډیویي یا ټلویزیوني پروګرام رسوونکی؛ ۳) ط. د کتابو شایع کوونکی.

**خپرېدل** (xparedə́l) مص.ل. ۱) خورېدل، نشرېدل د کتلوي مخابرې یا مفاهمې له لیارې د کوم

مطلب شایع کېدل؛ ۲) تیتېدل، شیندل کېدل.

**خپړ** (xapáṛ) ښځ.م. ۱) خپره، پنجه، دبنیادم د لاس پنجه؛ ۲) د پښو تله، د پښې پنجه؛ ۳) نر.م. بوربوکی، گرگله، څپلی، گرگېله.

**خپړوله** (xapaṛwəla) ښځ.م. پنجه چنار.

**خپسر** (xapsár) ص. نر.ق.ج. ۱) پخپل سر؛ ۲) په خپله خوله، آزاد، د خپلې رضاخاوند؛ ۳) ایله گشت، خپل سر.

**خپسکه** (xapə́ska) ښځ.م. خپسه، خپکی، خپکه، قپسه، ننگځه، خپسکې، کپسې.

**خپک** (xapák) نر.م. ترلمی، دلـه خپک، د پیشو په اندازه یو ځناور دی.

**خپکی** (xapakáy) ص. نر.م. ۱) غلی، په پټه منافق؛ ۲) څوز، یو ډول ازغن بوټی دی.

**خپگان** (xapgā́n) نر.م. ۱) خوابدی؛ ۲) غم.

**خپل** (xpəl) ص. نر.م. ۱) ځاني، د ځان، ځانته، ذاتي؛ ۲) نیږدې، قریب، خپلوان.

**خپل اړی** (xpəlaṛay) ص. نر.م. ۱) خپل چاری، خود غرضه؛ ۲) په ځان متکي.

**خپل چاري** (xpəlčārí) ښځ.م. خود غرضي، خودخواهي، په ځان میندنه.

**خپل خوښی** (xpəlxwáṣay) ص. نر.م. خود پسند، مغرور، ځان خوښی.

**خپل خوښي** (xpəlxwaṣí) ښځ.م. مغروري، خود پسندي.

**خپل سرتوب** (xpəlsartób) نر.م. خودسري، خپل سروالی، بې سري، ایله گښتي.

**خپل سرتیا** (xpəlsartyā́) ښځ.م. خودسري، خپل سري، خپل سروالی.

**خپل سري** (xpəlsarí) ښځ.م. بې قیدي، خود سري، خودمختاري.

**خپل گلوي** (xpəlgalwí) ښځ.م. خپلوي، خپښي، خپلوالی.

**خپل مخی** (xpəlmáxay) ص. نر.م. خودسره، خود رایه، خپل فکره، بې بند و باره.

**خپل مخیځ** (xpəlmaxíj) ص. نر.م ۱) خود رایه، پخپل فکرتلونکی؛ خودخواه.

**خپل منمی** (xpəlmanə́may) ص. نر.م. متکبر، مغرور، لوی چاری، لوی نوسی.

**خپلواک** (xpəlwā́k) ص. نر.م.ج. مستقل، د خپل اختیار خاوند، خود مختار، ازاد.

**خپلواکتوب** (xpəlwāktób) نر.م. ازادي، استقلال، خپلواکتیا، خپل اختیار، خپلواکي.

**خپلوان** (xpa(ə,u)lwā́n) نر.م. قریبان، دوستان، عزیزان، خپښان، خپل.

**خپلول** (xp(ə,u)lawə́l) مص. مت ۱) د ځان کول، ځان ته کول؛ ۲) خپښول؛ ۳) نیول، حاصلول؛ ٤) هضمول؛ ٥) بخښل، بښل.

**خپلولي** (xpəlwalí) ښځ.م. خپښي، خپلوي.

**خپلوي** (xpalwí) ښځ.م. ۱) خپلولي، خپښي؛ ۲) نیږدېوالی، نژدېوالی.

**خپلوی** (xpəlway) نر.م. پېچ، اسهال.

**خپله** (xpála) ص. ښځ.م. ۱) د خپل ښځینه شکل؛ ۲) په خپله، پخپله.

**خپله خوښه** (xpəlaxwáṣa) ښځ.م. رضا، پخپله مرضي، په خپله خوښه، په خپل میل.

**خپلېدل** (xpəledə́l) مص. ل. ۱) خپل کېدل، دوست کېدل؛ ۲) خپښ کېدل؛ ۳) د ځان کېدل، تملیک کېدل.

**خپم** (xpam) ص. نر.م. ۱) مغلوب، تبنتېدلی؛ ۲) خولم، په لتو وهل شوی، په څمکه څملولی؛ ۳) نر.م. پم، دخارښت ناروغي.

**خپنځ** (xpanǰ) ص. نـر.م. په ځمکه غځېدلی، په ځمکه هوار شوی، په ځمکه تخته شوی.

**خپنځتوب** (xpanǰtób) نر.م. خپنځتیا، په ځمکه غځېدنه، په ځمکه پلنېدنه، په ځمکه اوارېدنه.

**خپنځل** (xpanǰə́l) مص. مت. خولمول، په ځمکه اوارول، په ځمکه پلنول، په ځمکه تخته کول.

**خپنځېدل** (xpanǰedə́l) مص. ل. خولمېدل، په ځمکه اوارېدل، په ځمکه پلنېدل.

**خپند** (xpand) نر.م. ۱) وګ. خپنځ؛ ۲) یوه غېږه پاکه شوې (وړۍ، پنبه).

**خپندل** (xpandə́l) مص.مت. ۱) وګ. خپنځل؛ ۲) ټکول، وړۍ یا بل شی په لښتې سره ټکول؛ ۱) خولم شوی؛ ۲) وهل شوی، ټکول شوی.

**خپندول** (xpandawə́l) مص.مت. ۱) خولمول؛ په ځمکه اوارول؛ ۲) ندافي کول؛ ۳) سخت وهل

**خپندېدل** (xpandedə́l) مص. ل. ۱) خولمېدل، په ځمکه پلنېدل؛ ۲) ندافي کېدل.

**خپڼ غوړی** (xpanǧwáẓay) نـر.م. د غوړ شا، د غوړ نرمۍ، د غوړ پستکۍ، د غوړ پوڅکۍ.

**خپو** (xapó) ص.نب. وګ. خپه.

**خپوڅې** (xpocé) ښځ.ج. وګ. خاپوړې.

**خپور** (xpor) ص. نـر.م. (ج. خپـاره) ۱) تیت و پرک، خور (شوی)، ویر؛ ۲) نشر، شایع.

**خپورتیا** (xportyā́) ښځ.م. خپورتوب، تیتوالی، خپوروالی.

**خپورول** (xporawə́l) مص.مت. نشرول، خپرول، تیتول.

**خپوری** (xpóray) نـر.م. د ډلګۍ هغه سرتېری چې عادي وسله لري.

**خپورېدل** (xporedə́l) مص. ل. نشرېدل، خپرېدل.

**خپوسه** (xapúsa) ص. نب. چاغ، مزی، تیار.

**خپه**[1] (xapá) ص.نب. ۱) خـوابـدی، نـاراضـه؛ ۲) ښځ.م. زینډۍ، خپکۍ، له ستوني نیونه؛ ۳) نر.ج. لګوونی، یږه، یږې، شونتې.

**خپه**[2] (xpa) نر.ج ۱) یو ډول ګـنې (نیشکر) دی؛ ۲) ښځ.م. وګ. پنبه.

**خپه بند** (xpabánd) نر.م. پایزېب، پښولی، پایل.

**خپه خوپیا** (xapaxupyā́) ښځ.م. چپـه چوپتیا، کراره کراري، ښېخي ارامي، سره سنا.

**خپی** (xápay) نر.م. خاپی، ټاپی، داغ، خاپ.

**خپۍ** (xapáy) ښځ.م. پـړی، رسۍ، هغه پړی چې له وړیو یا پنبې څخه جوړ وي.

**خت** (xat) نر.م. (ج. ختونه) کمیس.

**ختا** (xatā́) ښځ.م. ۱) وګ. خطا؛ ۲) دشمالي چین لرغونی نوم او د ترکانو مسکن.

**ختاپسکۍ** (xatāpə́skəy) ښـځ.م. د ښېښیو یو ډول لوبه ده.

**خترز** (xatarz) نر.م. یو ډول سور ګله وانښه دي.

**خترزی** (xatarzáy) نر.م. یو ډول مرغۍ ده.

**ختکه** (xatáka) ښځ.م. خطکش، ختکی.

**ختل** (xatə́l) مص. ل. ۱) لـوړېـدل، پورته کـېدل؛ ۲) وتل؛ ۳) الیکل؛ ٤) په حیـواناتو کـې د نـر حیوان په وسیله د جنسي عملیې اجرا کېدل.

**ختم** (xátəm) ق. ۱) بس. خلاص، سرته رسـېدلی، اخیرته رسېدلی، انجام، پای.

**ختمول** (xatmawə́l) مص. مت. ۱) خلاصـول، تمامول؛ ۲) قرآنکریم تر پایه تلاوت کول.

**ختمه** (xatmá) ښځ.م. ۱) په مړي باندې (پسې) د قرآن لوستل؛ ۲) په مـړي پسې تر ځلوېښت شپو پورې ډوډۍ پخول.

**ختمېدل** (xatmedə́l) مـص. ل. خلاصېدل، بس کېدل، تمامېدل، بشپړېدل، پای ته رسېدل.

ختنه (xatná) ښځ.م. سنتونه، د کوچني هلک د تناسلي آله د سر داضافي پوستکي پرې کونه.
ختوبرېت (xatobrét) ص. نر.م. نوې ځوان.
ختوری (xatúray) نر.م. ١) خاتورې، شفتالو؛ ٢) يو ډول اغزن بوټی دی.
ختون (xatún) ا. لوړتیا، عروج.
خته (xáta) ښځ.م. ١) کالی؛ ٢) ټوکر؛ ٣) د ناوې جامې؛ ٤) ننگ، آب، پرده.
ختی (xatə́y) ښځ.م. زېرپېراني.
ختیځ (xatíz) نر.م. ختیز، شرق، لمرخاته.
ختیځپوه (xatizpóh) ص. ختیځپوهاند، ختیځ پېژاند، مستشرق.
ختیځواله (xatizwā́la) ا. ختیځولي، شرقیت.
خټ[1] (xaṭ) نر.م. ١) د خاورو پانډ؛ ٢) دخاورو غونډی؛ ٣) د مایعاتو خیرې؛ ٣) توره وریځ؛ ٤) دونې ببخ، د ونې ستنه.
خټ[2] (xuṭ) نر.م. ایشېدنه، جوشېدنه، غلیان.
خټبه (xaṭbə́) ص. نر.م. گلکار، ختیگر.
خټبېل (xaṭbél) نر.م. ترسب، لاندې کښېنستنه، د کوهي په تل کې له مایع سره گډ شویو ذرو کښناسته.
خټ خټ (xə́ṭxəṭ) نر.م. کټ کټ خندا، قهقهه.
خټک (xaṭə́k) نر.م. ١) گونگټ، سوسک، يو ډول خزنده ده؛ ٢) خرک؛ ٣) ببخ؛ ٤) د پښتنو د يوې قبیلې نوم دی.
خټکنی (xuṭkanáy) نر.م. ١) دېگ، دخواړه پخولو لوښی؛ ٢) ښځ.م. کټوی، کټوه؛ ٣) گلدانی، گلدان.
خټکی[1] (xaṭakáy) نر.م ١) شینکی؛ ٢) خربوزه؛ ٣) د ټټو موټه، دگنیو د ربېلو وروسته هغه برخه چې په ځمکه کې پاتې کېږي.
خټکی[2] (xaṭkáy) نر.م. ١) پانډ؛ ٢) دخاورو غونډکی؛ ٣) د انسان کالبوت؛ ٤) بوټي یا سرخې غوښه؛ ٥) کور، حویلي، مېنه.
خټکی (xaṭkə́y) ښځ.م. ١) سپلمی، يو ډول بوټی دی چې شیدې لري؛ ٢) لومه، لومکه.
خټگر (xaṭgár) ص. نرم. ختمار، معمار، گلکار.
خټم خټول (xaṭamxaṭól) ص. نر.م. خراب، درهم برهم، گډوډ، ویجاړ.
خټ موښی (xaṭmū́say) نر.م. گلماله، ختماله.
خټمېل (xaṭmél) ق. تمام، پای ته رسېدلی.
خټنکه (xuṭnáka) ښځ.م. دېگ، دېگی، دېگچې.
خټو (xaṭó) نر.م. يو ډول وابښه دي.
خټوبی (xaṭobáy) نر.م. خربی، خروبی، خروړی؛ هغه اوبه چې خټې او خاورې ولري.
خټورکی (xaṭorkáy) نر.م. يو ډول وابښه دي.
خټول[1] (xaṭawə́l) مص. مت. اوبه په خټو خړول.
خټول[2] (xaṭúl) نر.م. ١) گډ، مشترک ځمکه؛ ٢) غاټول، يو ډول گل دی؛ ٢) هغه طلاچې خالصه نه وي؛ ٢) ترسب، لاندې کښېنستنه.
خټولن (xaṭolán) ص. نر.م. ککړ، لړلی، ککړ شوی، په خټو لړلی.
خټه (xáṭa) ښځ.م. ١) د خاورې او اوبو له يو ځای کېدو ماده؛ ٢) قوم، نسب؛ ٤) ص. نب. خپه، نیولی؛ ٥) غلیظ، گاټه.
خټه (xúṭa) ښځ.م. و.گ. خوټه.
خټی (xəṭáy) نر.م. خرټی، د ربېلو نه وروسته په پټي کې پاتې شونی لکه د جوارو منډان.
خټېل (xaṭél) نر.م. ١) خټوېله، خروبی، چکړی؛ ٢) ص. نر.م. گاټه، ټینگ؛ ٣) له خټو ډک.
خټین (xaṭín) ص. نر.م. ج. ١) له خټو او خاورو څخه جوړ شوی؛ ٢) گاټه، خټه، ټینگ.

**خج** (xaj) نر.م. ۱) د اویو ځګ؛ ۲) خج پچ؛ ۳) ګر. فشار، د ادا شوي غږ دروندوالی یا سپکوالی.

**خجالت** (xijālát) نـر.م. شرم، خپریغ کـېدنه، شرمېدنه، خړکېدنه، خینګ.

**خجبدلون** (xajbadlū́n) (ګـر.) د فشـار د ځـای بدلون.

**خجپوهنه** (xajpohána) ا. خج پېژندنه، د فشـار پېژندنه.

**خجڅېړنه** (xajcerə́na) ا. د خـج څـېړنـه، پـه خجپوهنه کې څېړنه.

**خجتیا** (xajtyā́) ا. خجوالی.

**خجل** (xijíl) ص. نر.م. ج. شرمنده، خړ، خریغ.

**خجنښه** (xajnəṣa) ا. د خج علامه.

**خجور** (xajū́r) نـر.م. روغن جـوشي، غـونځابښی، ګونځابښی، رنځوښی، رنځښی، بوسراغه.

**خجوره** (xajū́ra) ښځ.م. ۱) کجـوره، خـرمـا، د خرماونه او مېوه؛ ۲) خجور.

**خجونکی** (xajū́nkay) ص.نر.م.شوخ، شیطان، مست، چست، چالاک.

**خجۍ** (xajə́y) ښځ.م. د غره ګازره، غرنۍ زردکه.

**خجي** (xají) ښځ.م. شوخي، مستي، شیطاني.

**خجیز** (xajíz) ص. خجن، خج لرونکی.

**خچ** (xač) نر.م. ۱) بدسلـوکي؛ ۲) کـږکاچ، شـق؛ ۳) خج، ستړېس، اېکسنټ؛ ٤) په یوه موضوع کې جنجال پیدا کونه.

**خچ پچ** (xačpáč) ص. نـر.م. ۱) میده میده، مات ګوډ، ذره ذره؛ ۲) مج. برباد، نابود.

**خچ پچتیا** (xačpačtyā́) ښځ.م. میـده میده، ذره ذره، خچ پچتوب، خچ پچوالی، چت پت.

**خچ پچول** (xačpačawə́l) مص. مت. ۱) میـده میده کول؛ ۲) څپل؛ ۳) مج. له منځه وړل.

**خچ پچېدل** (xačpečedə́l) مـص.ل. ذره ذره کېدل، میده میده کېدل، ریز مریز کېدل.

**خچ خچونی** (xačxačū́nay) نر.م. ۱) سر په څړی، سر په څـونږک؛ ۲) سرلتی، سرکول څوړنه.

**خچ خل** (xačxál) نر.م. اړخک، پچـک، پوچـک، هغه هګۍ چې سر او ښځ یې دواړه مات وي.

**خچر** (xačár) نر.م. غاتره، قاطر، کچره، قچره.

**خچره** (xačára) ښځ.م. جنس په جنس تبادله.

**خچړه** (xačáṛa) ښځ.م. چوخـړه، چوخنه، خچړی، چیخنه، خچه، خچې، د سترګو خچه.

**خچکه** (xačáka) ښـځ.م. ۱) نرۍ لښـته ده چې کوچنیان تیـږې پرې ولي؛ ۲) دغیچکې لیندۍ ۳) دګولۍ هدف ته نه رسېدل.

**خچل** (xačə́l) مص.مت. تېله کـول، پوري وهـل، تېل وهل، غورځول، دیکه کول.

**خچمچ** (xačmáč) نـر.م. ۱) خس و خـاشـاک؛ ۲) خرپین سری، پمن سړی، چیچکي سړی.

**خچن** (xəčan) ص. نر.م. خیرن، چټل، ناپاک.

**خچوری** (xačū́ray) نر.م. د ډوډۍ میده ګي.

**خچوکی** (xačū́kay) نر.م. دغوښې ټوټه، د غوښې خځوزی، د غوښې خځوړی.

**خچونکی** (xačū́nkay) فـا.نـر.م. اچوونکی، غورځوونکی، ګوزاروونکی، تېل وهونکی.

**خچونیا** (xačū́nyā́) ص.ښځ.م. و ګ. چخونیا.

**خچه** (xáča) ص. ښځ.م. ۱) پاتې شوی مـردکی؛ د وسلې هغه مرمۍ چې هدف ته نه وي رسېدلې؛ ۲) ښځ.م. خمچه ګوته، خچې ګوته، وړه ګوته.

**خځله** (xaǰə́la) ښځ.م. ۱) خځرکی، خس، خاشاک ۲) نېزراوړی واړه بوټي؛ ۳) (مج.) سپک.

**خځه** (xaǰa) ښځ.م. خره، تېوپۍ، د بوسـو تپۍ، د بوسو هغه خره چې سر یې لېو شوی وي.

**خځوکی** (xajūkay) نـر.م. ۱) ږ اک، چاود، د ځمکې د مخ چاودنه؛ ۲) لږ شی، لږ څیز.

**خڅڅکی** (xacackáy) ص. نر.م. خځنی، خځوزي خځوزي، د ډوډۍ کوچنی ذرې.

**خڅکی** (xacakáy) نر.م. غوبنه، ببتۍ.

**خڅله** (xaclá) ښځ.م. پیځکې؛ د نوکانو د اوریو د گوښت خورې مرض.

**خځوزی** (xacūzay) نر.م. خځوسی، خځوسکی، میده گي، ریزگي، د ډوډۍ وړې وړې ذرې.

**خځوکی** (xacūkay) نـر.م. ۱) نوکی، لـږ شی، وړه ذره؛ ۲) د کوچو پوټۍ، د کوچو غونډارۍ.

**خدای بښلی** (xodāybasə́lay) ص. اروابښاد، مرحوم.

**خدای بلل** (xwdāybalə́l) مص. مت. ۱) خدای یادول، د خدای ذکر او عبادت کول؛ ۲) حـج ته تلل؛ ۳) مرگ ته نږدې کېدل.

**خدای پاماني** (xwdāypāmāní) ښځ.م. مخه ښه، رخصتېدنه، رخصت.

**خدای زده** (xwdāyz dá) ف. ۱) خدای پوهېږي، خدای پوه دی؛ ۲) نه یم خبر، نېخه، څخه.

**خدای ږو** (xwdāyẓó) ښځ.م. قسم، لوړه، سوگند

**خدري** (xadrí) ښځ.م. دغوبه یا غوبانه ډوډۍ.

**خدړ** (xadár) ص. نر.م. خوار، غریب، خرمخی.

**خدشه** (xadšá) ښـځ.م. ۱) گـړوړی، نـوکـاره؛ ۲) ضرر، زیان؛ ۳) ډار، وېره، بیم.

**خدښکه** (xudáṣka) ښـځ.م. د درواغـو قسـم، د دروغو سوگند، په دروغو لوړه.

**خدعه** (x(a,u)dʻá) ښځ.م. چل، فریب، غولونه.

**خدمت** (xidmát) نر.م. ۱) چوپړ، نوکري؛ ۲) کار.

**خدمتگار** (xidmatgā́r) نـر.م. خدمت کوونکی، نوکري کوونکی.

**خدمتي** (xidmatí) ص. نب. ۱) خدمت کوونکی؛ ۲) وړ، صادق؛ ۳) څوک چـې رسـماً د خپلې موسسې څخه بل چیهرته لیږل شوی وي.

**خدنگ** (xadáng) نر.م ۱) غشی؛ ۲) منډ، خندق؛ ۳) هرهر چنار؛ ٤) یو ډول کلک لرگی دی.

**خډل** (xaḍál) نر.م. کوته سپی، لوی سپی.

**خډل بډل** (xaḍalbaḍál) ص. نر.م. شلنډ، څورب، چـاغ؛ ۲) بې تناسبه چاغ.

**خر** (xar) نر.م. ۱) د خـرې نر؛ ۲) د سـپـښـتې اواره خوا؛ ۳) د مرۍ اواز، د خرېدو اواز.

**خراب** (xarā́b) ص. نـر.م. ج. ۱) وران، ویجـاړ؛ ۲) تباه، برباد، د آباد ضد.

**خرابات** (xarābā́t) نر.ج. ۱) دعیش او نوش ځای؛ ۲) زیات لگښت کونه؛ ۳) ورانې.

**خراباتي** (xarābātí) ص. نب. ۱) خـرابات سـره تړلی؛ ۲) مسرف؛ ۳) څـوک چې خپل شته په ملگرو خوري.

**خراب تراب** (xarābturā́b) ص. نر.م. ۱) وران ویجاړ؛ ۲) تباه، برباد، دربه دره.

**خرابتیا** (xarābtyā́) ښځ.م. ۱) خرابي، خرابوالی، ویراني، ویجاړتیا؛ ۲) نیمگړتیا.

**خرابول** (xarābawə́l) مـص. مـت. ۱) ورانـول، ویجاړول؛ ۲) مج. بې لارې کـول؛ ۳) مج. د چا سره بدکار کول.

**خرابه** (xarābá) ص. ښـځ.م. ۱) کـنډواله، کنډر؛ ۲) خاره ځمکه؛ ۳) د خراب مؤنث.

**خرابي** (xarābí) ښځ.م. ورانی، تخریب، خرابتوب.

**خـرابېدل** (xarābedə́l) مـص. ل. ۱) ورانېـدل، ویجاړېدل؛ ۲) له لارې وتل.

**خراپ** (xarā́p) نر.م. ۱) خراب؛ ۲) زخم، پرهر.

**خراتگه** (xarātgá) ښځ.م. ځانگه، د ونې ښاخ.

**خراټه** (xarāṭá) ښځ.م. د حیوان د خرېدو اواز.

**خراج** (x(i,a)rā́j) ص. نر.م. ۱) باج، محصول، مالیات؛ ۲) تاواني، خرڅو، مسرف.

**خراچکی** (xrā́čkay) نر.م. و گ. خراشکی.

**خراد** (xarā́d) نر.م. دخرادۍ په ماشین کارکوونکی

**خرادي** (xarādí) ص نب. ۱) د تورلو، د خرادۍ ماشین؛ ۲) ښځ.م. مشرنگ کونه، د لرگي تورنه، لرگي ښوی کونه؛ ۲) تورنه.

**خراړکه** (xrāṛáka) ښځ.م. خرېړکه، ایرخاړی، یو ډول سپېره مرغۍ ده.

**خراړه** (xrā́ṛa) ښځ.م. خړ رنگې مرغۍ ده.

**خراس** (xarā́s) نر.م. د تېلو گیني، د تېلو ایستلو جواز، د تېلو د ویستلو ماشین.

**خراشکی** (xrā́škáy) نر.م. بلغم، خرپ، خراچکی.

**خرافات** (xarāfā́t) نر.ج. بې مانا خبرې، چټي خبرې، ارتاویزې، چټیاټ.

**خرام** (xirā́m) نر.م. په ناز او نزاکت تگ.

**خرانده** (xrā́nda) ښځ.م. تورل شوې ځمکه یا شی.

**خرانگه** (xrā́nga) ښځ.م. ۱) وړه خانگه، وړه ښاخله؛ ۲) د پوزې نرۍ او ښکاره پانې.

**خربشوی** (xarbišóy) نر.م. ۱) خنځیر، سوډر، سوور؛ ۲) مج. سپک، بې آبه.

**خربنی** (xarbanáy) ص. نر.م. خروالا، خرکار.

**خربني** (xarbaní) نر.م. خرکاري، د خرو چلولو کسب او کار.

**خربوټی** (xarbū́ṭay) نر.م. یو ډول بوټی دی.

**خربوجل** (xarbū́jal) ص.نړ.م. په لتو وهل شوی، ټکول شوی، دوهلو په واسطه بې عزته شوی.

**خربون** (xarbū́n) ص. نر.م. خربه، خره پوونکی.

**خربونتوب** (xarbūntób) نر.م. خربونتیا، خره پوونه، خره څرونه، د خرو پوونه.

**خربه** (xarbə́) ص. نر.م. د خره خاوند، د خرو ساتونکی، خره چلوونکی.

**خربه توب** (xarbatób) نر.م. د خرو پوونه، خرکاري، خربه والی، د خرو ساتنه.

**خرپ** (xrap) نر.م. ۱) د کوم شي د وهلو او ماتېدلو آواز؛ ۲) نیکاره، شونگاره؛ ۳) غرور.

**خرپانډی** (xarpānḍay) نر.م. موش پران، موش پرانگ، یو ډول موږک دی..

**خرپټ** (xarpáṭ) نر.م. کپه، میده شوې دوا.

**خرپټه** (xarpaṭá) ښځ.م. یو ډول خړ رنگه واښه دي

**خرپل** (xarpál) نر.م. گیچه، توپاله.

**خرپل** (xrapə́l) مص. مت. خرپول، وهل، ټکول.

**خرپلکې** (xarpalaké) ښځ.م. خلپلکې، په خاورو کې د چرگو لتې وهل او خاورې په ځان شیندل.

**خرپله** (xarpalá) ښځ.م. زوړ تغر، گدله.

**خرپلی** (xrapaláy) مف. نر.م. خرپول شوی، وهلی شوی، ټکولی شوی، ډبولی شوی.

**خرپند** (xrapánd) نر.م. سخته جگړه، سخته ناروغي؛ ۳) په آسانۍ ماتېدونکی.

**خرپول** (xrapawə́l) مص. مت. ۱) وهل، ټکول، ډبول؛ ۲) د کلک شي خوړل، خرچول.

**خرپهار** (xrapahā́r) نر.م. خرپی، خرچهار، د یوه شي د خوړلو اواز.

**خرپه خرگردانه** (xarpaxargardā́na) ښځ.م. ۱) د کوچنیانو یو ډول لوبه ده؛ ۲) بې نظمه او بې قانونه کار.

**خرپیاځه** (xarpyáca) ښځ.م. یو ډول بوټی دی چې سپین گلان کوي او نرې اغزې لري.

**خرپېدل** (xrapedə́l) مص. ل. ۱) وهل کېدل، ډبېدل؛ ۲) تس ختل، خرچېدل؛ ۳) کرپېدل؛ ۴) قارېدل، خوتېدل.

**خرپين** (xarpín) نـر.م. ١) يـو ډول كـــورت؛ ٢) د ځاروېو د خوراک پاتې شونې.

**خرت** (xrat) نر.م. ١) نفرت، کرکه؛ ٢) دحلالـــولو اواز، جوړ، جړ.

**خرتموس** (xartamū́s) نر.م. سخته گرمي.

**خرتوب** (xartób) نر.م. ناپوهي، ناداني.

**خرتوس** (xartū́s) نر.م. يو ډول بوټى دى.

**خرتيزه** (xartíza) ښځ.م. ١) توپکـې، توپونه، په دواړو پښو توپونه؛ ٢) بې تميزي.

**خرټ** (xraṭ) ص.نـر.م. ١) چـاغ، غټ؛ ٢) خنـډ؛ ٣) د ډيلې ښځ چې ډېر خوړلي وي؛ ٤) نـر.م. د تېلو پاتې شونې، د تېلو خيرې.

**خرټتوب** (xraṭṭób) نر.م. خرټتيا، چاغوالى.

**خرټسکى** (xarṭə́skay) نر.م. د يو ډول بوټي ښخ چې گرد شکل لري او تريخ خوند کوي.

**خرټول** (xraṭawə́l) مص. مت. ١) چاغـول، مـزى کول، تيارول؛ ٢) پاکول، صافول.

**خرټه** (xə́raṭa) ښځ.م. پگړى، پگه، غټ پټکى.

**خرټه** (xraṭa) ص. نر.م. دوه مخى، تگ، منافق.

**خرټى** (xarṭáy) نر.م. ١) غونډ، گـردى؛ ٢) د ونې ښخ چې لږ له ځمکې لوړ وي؛ ٣) دريشقې ښخ؛ ٤) خريخ، مونډاڼ.

**خرټيټ** (xarṭíṭ) نر.م. ريزش، زکام، والگى.

**خرټېدل** (xraṭedə́l) مص. ل. چاغېدل، مزى کېدل، ځوربېدل، خربېدل.

**خرجاړى** (xarjāṛáy) نر.م. د غره د لمنې ډبره.

**خرجگ** (xarjág) نـر.م. خچکه، د ماشومانو يو ډول لوبه ده.

**خرجگجگلى** (xarjagjəgaláy) نـر.م. د ماشومانو يو ډول لوبه ده.

**خرجوبله** (xarjóbla) ښځ.م. گنه گونه، بېروبار.

**خرجيکه** (xarjíka) ښځ.م. ځولى، جولى، کلېږ.

**خرجين** (xurjín) نر.م. خورجين، ښپړدن.

**خرچ**[1] (xrəč) نر.م. د يوه شي د ماتولو اواز.

**خرچ**[2] (xarč) نر.م. و گ. خرڅ[2].

**خرچ برچ** (xarčbárč) نر.م. د ښځيو يوه لوبه ده.

**خرچکا** (xrəčkā́) ښځ.م. هغه جزيې او لږ ضرر چې د غنمو کښت ته ورسېږي.

**خرچول** (xračawə́l) مص.مت ١) غاښونه چيچل ٢) جنگول (د تورو يا لرگيو)؛ ٣) سره وهل.

**خرچومى** (xarčū́may) نر.م. خرمستى، غړدانگى

**خرچها** (xrəčahā́r) نر.م. د غاښونو د چيچلو اواز.

**خرچى** (xrəčáy) نر.م. خرچا، خرچهار.

**خرچېدل** (xračedə́l) نر.م. ١) غـاښونه چيچل کېدل؛ ٢) دلرگيو د ماتېدو اواز پورته کېدل.

**خرچيلکې** (xarčiláke) ښځ.م. خرمستى، انډوخرى، خرې تنډى.

**خرڅ** (xarc) نر.م. ١) مصرف، لگښت؛ ٢) ځورى، توښه؛ ٣) پلورنه؛ ٤) د خرڅول د فعل ريښه.

**خرڅاوو** (xarcāwū́) ص.نر.م. مسرف، لگوونکى، لگښتي، خرڅي، خراج.

**خرڅښت** (xarcə́st) نر.م. لگونه، لگښت.

**خرڅگير** (xarcgír) نـر.م. څوک چې په بندرونو کې د مالونو په سر گمرکي محصول اخلي.

**خرڅلاو** (xarclā́w) نر.م. خرڅونه، فروش، خرڅون د بيې په بدل کې د يوه مال د ملکيت انتقال.

**خرڅوړي** (xarcuṛí) نر.ج. ١) زاړه او بزه بزه کالي ٢) بجړانگې، لوښي، کودي.

**خرڅول** (xarcawə́l) مص.مت ١) مصرفول، لگول ٢) پلورل.

**خرڅووني** (xarcawū́nay) مف. نر.م. د خرڅلاو شى، د خرڅوني جنس، د پلورنې مال.

**خرخه** (xarcá) ښځ.م. شوری، خرخی، د ارې توښه، د لارې خرڅ.

**خرڅي** (xarcáy) نر.م. خرڅه، د لارې شوری.

**خرڅي** (xarcí) ص. نب. مسرف، لګښتي، خراج، بدخرڅه، بدلاسه.

**خرڅېدل** (xarcedə́l) مص. ل. ۱) مصرفېدل، لګېدل؛ ۲) پلورل کېدل.

**خرخچ** (xarxač) نر.م. زینه، پوړۍ.

**خرخرج** (xarxaráj) نر.م. د ببرېو یو ډول لویه ده.

**خرخره** (xarxará) ښځ.م. ۱) د آس او نورو حیوانات د ګرولو آله؛ ۲) هغه ډبرې چې داوبو دراګرځولو لپاره په زنبیل کې وړلې کېږي؛ ۳) دلاسا کول.

**خرخشی** (xarxašáy) نر.م. ستونی صافول، خریسی کول، توخ وهل، غاړه تازه کول.

**خرخښه** (xarxašá) ښځ.م. ۱) وسواس، وسوسه، تشویش؛ ۲) دکوچنیانو یو ډول ناروغي ده؛ ۳) د ورو ځېل، د ماشومانو جېل؛ ۴) فقنه.

**خرخلال** (xarxilā́l) نر.م. دکوچنیانو لوبه ده.

**خرخوړۍ** (xarxuṛə́y) ښځ.م. ۱) اویګرځنی، ګرداب، ژور ګرداو؛ ۲) پته سوړه یا ځای.

**خرخول** (xarxwál) نر.م. لویه بیاتي، خول خول، لوی غیجي چې مېږې ورباندې سکولي.

**خرډنګ** (xardáng) ص. نر.م. بلډنګ، خرډنګ، بې‌عقل؛ بې تمیزه، بېکاره.

**خرډبه** (xarḍába) ص. نر.م. بې ډبه، کم عقل.

**خرډګ** (xarḍág) نر.م. ۱) یو ډول سارانی بوټی دی؛ ۲) ص. نر.م. (مج.) احمق، بې عقل.

**خرډګی** (xarḍəgáy) ص. نر.م. ۱) بې تمیزه، جاهل؛ ۲) تیتکی؛ ۲) مرڅېړی، سمارق.

**خرډیګ** (xardíg) نر.م. ۱) د یوه بوټي نوم دی؛ ۲) مورکی، هغه کوچنی لرګی چې د مرغیو په دام کې وي او ډوډۍ پرې پېیل کېږي.

**خرړک** (xarṛak) نر.م. خرېړکه، د شامتورې په اندازه یوه مرغۍ ده.

**خرز** (xarz) نر.م. هغه لرګی چې د اوږو مقدار پرې اندازه کېږي.

**خرزوره** (xarzóra) ښځ.م. یو ډول واښه دي.

**خرزېړی** (xarzeráy) نر.م. ژېړی، زېړی، ژړی، د زېړي ناروغي، تورزېړی.

**خرس**[1] (xars) نر.ج. یو ډول خوشبویه واښه دي چې خلک تخم یې ښوروا ته وراچوي.

**خرس**[2] (xirs) نر.م. یږه، یږ، مېلو.

**خرساب** (xarsā́b) نر.م. د ببرېو یو ډول لوبه ده.

**خرسپانده** (xarspā́nda) ښځ.م. یو ډول بوټی دی چې سپین ګل کوي او نرۍ نرۍ پاڼې لري.

**خرسک**[1] (xarsák) نر.م. د خوښۍ او خوشالۍ تېرونه او خېزونه، د خوښۍ جستکې.

**خرسک**[2] (xursák) نر.م. و ګ. خروسک.

**خرسن** (xrasán) نر.م. ۱) ستن، متره، لوی او قوي لرګی چې برنده کې عموداً ولاړ وي؛ ۲) ص. نر. م. ج. ۱) چغزی، کاغذي؛ ۲) ډډ، ګوګ.

**خرسور** (xarsór) ص. نر.م. احمق، نادان.

**خرسومبه** (xarsumbá) ښځ.م. پښۍ (رواش) غوندې یو سارایی بوټی دی.

**خرش** (xraš) نر.م. ۱) هغه اواز چې د ژر ژر تنفس څخه پیدا او له پزې راوځي؛ ۲) ناڅاپي قهر.

**خرشکه** (xraškáّ) ښځ.م. ۱) ستو، هغه دانه چې زوه ونه لري؛ ۲) خوشکي، دګوډ پیران نری کاغذ.

**خرشونډی** (xaršundáy) ص. نر.م. ۱) د لویو او پنډو شونډو خاوند؛ ۲) نر.م. وربوز، سونډک.

**خرشېدل** (xrašedə́l) مص.ل ۱) خرتېدل، پرشېدل ۲) قهرېدل، په خوشکه کېدل.

**خرشين** (xaršín) نر.م. خرسين، خرشنه، پرشنې، لېو، د آس يا خره خوشايي.
**خرطوم** (xartúm) نر.م. ١) خرتم، خرتم، خلتم، د پيل خرتم؛ ٢) د سوډان پايتخت.
**خرغوږی** (xargwáẓay) نر.م. خرغوږ، يو ډول خړ رنګه پت لرونکی بوټی دی.
**خرغوله** (xarğolá) ښځ.م. يو ډول بوټی دی.
**خرغيني** (xarğíṇay) نر.م. خرږګی، خرېږی، يو ډول مرخېړی، ګوڅی، د هندوانو ستوري، دغه ډول مرخېړی نه خوړل کېږي.
**خرفه** (xurfá) ښځ.م. ورخاړی، يو ډول سابه دي.
**خرقه** (xirqá) ښځ.م. ١) هغه جامه چې له ډول ډول ټوکرانو څخه جوړه شوې وي؛ ٢) دفقيرانو جامه ٤) چپنه، ګوړی، ګنده، ګورازه.
**خرقه پوش** (xirqapóš) ص.نر.م. ملنګ، فقير.
**خرک** (xarák) نر.م. ١) هغه لرګی چې درې پښې لري او غرکه ورباندې څوړنده وي؛ ٢) تيرک، د ژرندې د تير په سر کې اوسپنه؛ ٣) هغه لرګی چې د درياب تارونه ورباندې سپاره وي؛ ٤) يو ډول خړ رنګی حشره ده.
**خرکار** (xarkā́r) ص. نر.م. و ګ. خرېنی.
**خرکاو** (xarkā́w) نر.م. ١) دکرل شو غنمو لوړی ځل اوبول؛ ٢) خرکاو، ښه اوبه کونه.
**خرکوتره** (xarkawtára) ښځ.م. يو ډول سارانی کوتره ده.
**خرکه** (xáraka) ښځ.م. شډله څمکه، شنډه ځمکه.
**خرکی** (xarakáy) ښځ.م. متېخ، يو ډول خزنده ده.
**خرکی** (xurkay) نر.م. د خرېدو اواز، خرېدل.
**خرکېدل** (xarkedál) مص. ل. ١) ښه وده کول، ژر ژر لوېدل؛ ٢) دانه پرسېدل؛ ٣) د بلوغ په وخت کې چاغېدل؛ ٤) سخت اصرار کول.

**خرګټ** (xargáṭ) نر.م. خرګته، خرکه، يو ډول خړ سارانی مرغه دی.
**خرګی** (xargay) نر.م ١) دخره اسم تصغير، کوچنی خر؛ ٢) د اتڼ د مستېدو اواز.
**خرل** (xaráḷ) مص. مت. ١) څېرل، په لاس يا پښه ځمکه ګرول؛ ٢) جېل کول، پښې خرل؛ ٢) شيندل، تيتول، پاشل، خپرول.
**خرلنځه** (xarlánǰa) ښځ.م. د څېرې يو ډول دی.
**خرلوډګلی** (xarloḍagaláy) نر.م. جرجګلی، ګڼه ګوڼه، خرې خنداره، بېروبار، ازدحام.
**خرلی** (xarə́lay) مف. نر.م. ١) ګرېدلی، نوکارې کړی؛ ٢) څېل کړی؛ ٣) شيندلی؛ ٤) غوړول شوی؛ ٥) قوي، چاغ، مزی (سړی).
**خرم** (xurám) ص. نر.م. ج. تروتازه، خوشحال.
**خرما** (xurmā́) ښځ.م. خجوره، کجوره، يو ډول خوږه مېوه ده.
**خرمايي** (xurmāyí) ښځ.م نسواري، خرمارنګی.
**خرمچی** (xarm(u,ə)čáy) نر.م. يو ډول خانګې او لښتې لرونکی نرم بوټی دی.
**خرمستي** (xarmastí) ښځ.م. لټهپېر، انډوخر، بې ډبه او نامنظمه لوبه يا مستي.
**خرمندی** (xarmandáy) نر.م. وړوکی او ګردی شی، کوچنی او غونډ شی، ډېر کوچنی شی.
**خرمنډی** (xarmanḍə́y) ښځ.م ١) يو ډول ونه ده؛ ٢) خرمستي لټهپېر، غوی منډ، انډوخر.
**خرموره** (xarmorá) ښځ.م. ١) د خر په ستوني کې يوه هډوکی ده. ځينې خلک دغه هډوکی کاږي او د جادو لپاره يې کاروي؛ ٢) يو ډول ځيږه مرۍ ده چې له صدف څخه يې جوړوي.
**خرمېټی** (xarmeṭáy) ص. نر.م. منډری، جبلی، ګردی (سړی)، مزی او چاغ سړی.

**خرمېړی** (xarmeṛáy) نر.م. یو ډول نبات دی چې پهولیو کې یې ژاولې نښتې وي.

**خرنار** (xarnā́r) نر.م. سپینه بنګه، یو ډول ګیاه ده

**خرناوه** (xarnāwá) ښځ.م. تـرچتکي (چتي) یوه کوچنۍ مرغۍ ده.

**خرنج** (xranj) نر.م. فساد، فتنه، اغتشاش.

**خرنده** (xrandá) ښځ.م. نوکاره، شوکاره، ګرونه.

**خرندي** (xarandí) نر.م. خامپلک، د وربېز، چرګې او زرکې خاکي کونه.

**خرنډ** (xranḍ) نر.م. ۱) ځبل، د ماشوم ضد کول؛ ۲) سرتمبګي؛ ۳) د زخې لرونکي مونډه بېخ؛ ۴) زخه، خنډ، خرټ.

**خرنډل** (xranḍə́l) مص. مت. ۱) ازارول، ځورول؛ ۲) سوري کول؛ ۳) پېیل؛ ۴) ګنډل، جـوړول؛ ۵) سولول، زدوول، زدوړل.

**خرنډېدل** (xranḍedə́l) مص.ل. ۱) ربړېدل، کړېدل؛ ۲) سوری کېدل؛ ۳) پېیل کېدل؛ ۴) ګنډل کېدل ۵) سولېدل، زدوړل کېدل؛ ۶) د ماشوم ژړېدل.

**خرنګ** (xaráng) نر.م. ۱) ګرړنه، خرنه، شوکارې کونه؛ ۲) خرند، د پخو ځنبتو نرۍ دېوال.

**خرنګی** (xrangáy) نر.م. د جولاګانو د اوبدلو ځانګړې لرګی.

**خرنل** (xarnál) نر.م. غوټ نل، پنډ نل، غټ کړک.

**خرنه** (xarə́na) ښځ.م ۱) ګرړنه، ګـرونه؛ ۲) پاشـنه تیتونه، ښندنه، شیندنه.

**خروار** (xarwā́r) نر.م. د کابل د اتیامنو، د کندهار د سلومنو سره معـادل وزن.

**خروتېر** (xarotér) ص.نر.م. سرتمبه، سرزوری.

**خروټی** (xarwáṭay) نر.م. د غلې پیمانه.

**خروټي سپرغه** (xaroṭaysparǧā) ښځ. م. یـو ډول کنبېده دی چې د اوبو څرخ تهورته ده.

**خروډک** (xroḍík) نر.م. د چتي (چتکي) په اندازه یوه وړه مرغۍ ده.

**خرورګ** (xarwárg) نر.م. پنځه کلن پسه یا ګډ.

**خروړا** (xroṛā́) ښځ.م. یو ډول سارانې سابه دي.

**خروړک** (xroṛák) نر.م. یو ډول سارانې سابه دي.

**خروړی** (xaróṛay) ص. نر.م. ۱) خوړونکی سپی؛ ۲) مج. هغه څوک چې هر چاته خوله اچوي.

**خروسک** (xurosák) نر.م. خراسک، یـو ډول د ستونی ناروغي ده.

**خروش** (xuróš) ص.نر.م.ج. ۱) د قهر او غضب ناره؛ ۲) د جوش له کلیمې سره یو ځـای د ښه آرام ژوند لرونکي او خوښۍ مانا ورکوي.

**خروکی** (xarū́kay) نر.م. شخوند وهونکی حیوانات

**خرول**(۱) (xarawə́l) مص. مت. ۱) خرېیل، کلول؛ ۲) په خورهار راوستل.

**خرول**(۲) (xrul) نر.م. ۱) د منګي لرګین سرپوښ؛ ۲) خروړ، دالیکین د تېل اچولو د سوري سرپوښ

**خرولال** (xarolā́l) نـر.م. د سترګو پټون (سترګې پټول) په څېر یوه لوبه ده.

**خروله** (xarwə́la) ښځ.م. ۱) سـارانۍ وله؛ ۲) یو ډول غرنۍ ونه ده چې ولې په څېر پاڼې کوي.

**خرولی** (xərawə́lay) مف. نر.م. په خرهار راوستی.

**خرولی** (xərawə́lay) مف. نر.م. خرول شوی.

**خرومږ** (xaromáẓ) ص. نر.م. ۱) احمق، ناپوه، نادان، کم عقل؛ ۲) جنجالي.

**خرومه** (xróma) ښځ.م. روزي، رزق، آذوقه.

**خرونکی** (xarū́nkay) فا. نر. م. ۱) ګروونکی، توږوونکی؛ ۲) پاشونکی؛ ۳) جبل کوونکی، د چا خبره نه منونکی.

**خرونګی** (xrū́ngay) نر.م. له میزرې څخه د پانو تر پربکېدو وروسته پاتې شوې برخه.

**خرونه** (xərawə́na) ښځ.م. ۱) په خرخر راوستنه؛ ۲) کلونه، خرېينه، کل کونه، تراشنه.

**خروه** (xarwá) نر.م. د شينشوبي په څېر يو بوټی دی.

**خره** (xará) ښځ.م. دلۍ، غونډۍ، امبار، توپنۍ.

**خرهار** (xərahā́r) نر.م. د خورخور اواز.

**خره خراړه** (xraxrā́ṛa) ښځ.م. د خرېړکې په اندازه يوه سپېره مرغۍ ده.

**خره زن** (xrazán) نر.م. مونی، دوه ښاخی لرګی دی چې د لاندې غوښنه پرې څروي.

**خره واژ** (xrawā́ž) نر.م. يو ډول سابه دی.

**خری** (xaray) نر.م ۱) د پنبې مبخک؛ ۲) ص. تمبه، تمبه، شله؛ ۲) نر.م. يو ډول سپونی، دجلد يو ډول ناروغي ده.

**خرياشک** (xaryāšə́k) نر.م. يو ډول شين رنګی بوټی دی چې ښخ يې خوړ او نری ډنډر لري.

**خريان** (xaryā́n) نر.م. ۱) خر، مردار هډی؛ ۲) مج. آس، اس.

**خرې په خرې** (xrepaxré) ق. خره په خره، بغل پر بغل، څنګ په څنګ.

**خرېټی** (xreṭáy) نر.م. د خلکو ګڼه ګونه، ازدحام.

**خريد** (xaríd) نر.م. اخيستنه، رانيونه، پېرودنه.

**خرېدل** (xaredə́l) مص. ل. ۱) خورېدل؛ خورهاری کول؛ ۲) خرېيل.

**خرېړکه** (xreṛáka) ښځ.م. خراړه، يو ډول مرغۍ ده چې د وزرو ښخ يې يو ډول آواز لري.

**خرېړی** (xareṛáy) نر.م. ۱) د شيدو او شلومبو سره ګډېدل؛ ۲) خرډګی، سمارق، پوڅکی.

**خريز** (xriz) نر.م. ۱) غټ لرګی؛ هغه لرګی چې د ژرندې پل پرې پورته کوي؛ ۲) د کباب سيخ؛ ۳) پيغ، د چرګ د عمر د معلومېدو خندان؛ ٤) د ريشکې ښخ؛ ٥) ډيله، يو ډول نبات دی؛ ٦) نېښ، تېغی، سر، تو کېدلې وابښه يا نبات.

**خريطه** (xarīṭá) ښځ.م. ۱) کڅوړه، خلته، بسته؛ ۲) جغ. نقشه، هغه نقشه چې د ټولې ځمکې سطحه يا يوه محدوده ساحه راوښيي.

**خرېمه** (xaremá) ښځ.م. هغه خره چې خرغوارې.

**خرينه** (xrayə́na) ښځ.م. خرينګ، خرېينه، کلونه.

**خريونی** (xaryū́nay) نر.م. خرېيونی، دخرولو آله، د کل کولو آله.

**خرېيل** (xareyə́l) مص. مت. خرول، خريل.

**خرېيونی** (xareyū́nay) نر.م. خريونی، د خرېيلو يا خرولو آله، د کلولو آله.

**خزری** (xazə́ray) نر.م. ۱) کک، د ډوډۍ خڅوړی؛ ۲) ډېر کوچنی شی، ميده ګي.

**خړ**(۱) (xəṛ) ص. نر.م. ج. ۱) خاکي، خاورې رنګه، ايره رنګه؛ ۲) پړ، ملامت؛ ۲) خجل.

**خړ**(۲) (xuṛ) نر.م. شور، د مايعاتو د توېيدلو اواز.

**خړاس** (xṛās) نر.م. ۱) خړس، اوار، مستوي، خپور؛ ۲) دتکر اواز.

**خړامبو** (xṛā́mbo) ص. نب. شلنډ، چاغ، غوټ.

**خړامبوګی** (xṛāmbogáy) ص. نر.م. د خړامبو تصغير، څورب، چاغ، شلنډ.

**خړامېچ** (xṛāméč) ص. نر.م. چت پت، خچ پچ، چيت پيت، ترېښو لاندې چخپيت شوی.

**خړانکه** (xaṛānə́ka) ښځ.م. شدوبې، مرغۍ، سپرلاکه، شمشې ناکه، شپش ناکه.

**خړانګه** (xaṛā́nga) ښځ.م. ښاخ، څانګه، نوده، ګنده، نوغرک، خرانګه، خړانه.

**خړاو** (xaṛā́w) نر.م. و ګ. خړوب.

**خړاوه** (xaṛāwá) ښځ.م. ۱) د سپيو جګړه؛ ۲) مج. د دوو کسو زور ازمايي.

**خربخن** (xəṛbaxán) ص. نر.م. خرچک، خرته مایل، خربخون، خر رنګی، خرغوندې.

**خرپ** (xṛap) نر.م. ۱) خرپ، د یوه شي د ماتېدو اواز؛ ۲) د باب، سومانه، ډب، طمطراق.

**خرپا** (xṛapā́) ښځ.م. خرپا، د یوه شي د ماتېدلو یا لوېدلو پرله پسې اواز.

**خرپړ** (xaṛpáṛ) ص. نر.م. ج. ۱) بشپړ په خاورو لړلی، دخاورو په رنګ؛ ۲) متواضع.

**خرپړتیا** (xəṛpəṛtyā́) ښځ.م. ۱) خرپړوالی، ګډوډي؛ ۲) خپګان، ورانې، بدي، زړه بدي.

**خرپند** (xṛapánd) ص. نر. م. ج. ټینګه (مایع)، ګاټه، غلیظ.

**خرپوځي** (xaṛpóce) ښځ.م. و ګ. خا

**خرپ وخروپ** (xṛapoxṛū́p) نر.ج. ۱ ډېرې خبرې کول؛ ۲) دخو شیانو د ماتېدو لوېدو اوازونه؛ ۳) مندنه او راکښنه.

**خرپول** (xṛapawə́l) مص.مت. ۱) له غلیظو مایعاتو څخه اوازونه ایستل؛ ۲) وهل، ټکول، خرپول؛ ۳) جنګ کول، سره وهل.

**خرپېدل** (xṛapedə́l) مص.ل. ۱) له غلیظو مایعاتو څخه اواز ختل؛ ۲) په ویاله، یا سیند کې لمبل.

**خرت** (xṛat) نر.م. ۱) ګرنګ، قنبي، غوزن؛ ۲) له پوزې څخه د ګرنګو او قنبو د راوتلو اواز.

**خرتم** (xaṛtám) نر.م. و ګ. خرطوم.

**خرتن** (xṛatán) ص.نر.م. ګرنګن، قنبا، د هغه چا چې قنبې (غوزې) ډېر بهېږي.

**خرتوب** (xəṛtób) نر.م. ۱) خروالی، خرنګوالی؛ ۲) خجالت، شرمېدنه.

**خرتې** (xṛaté) ښځ.م. چټي خبرې، عبث خبرې.

**خرتې پرتې** (xṛateprate) ښځ.ج. هغه دغه، چل ول، فریب، غولونه.

**خرجن** (xəṛján) ص. نر.م. ۱) خروزمه، خر رنګه؛ ۲) خیرن، چټل، کثیف؛ ۳) تت، خړکی.

**خرچ** (xṛač) نر.م. د کلک شي د ماتېدلو اواز.

**خرچند** (xṛačánd) ص.نر.م د خرچ اواز کوونکی.

**خرچول** (xṛəčawə́l) مص.مت. ۱) له کلک شي له ماتولو سره اواز ایستل؛ ۲) د ټوپکونو لټونه وهل؛ ٤) د کوم کلک شي ژوول.

**خرچهار** (xṛəčahā́r) نر.م. ۱) خرچهاری، د کلک شي د ماتېدلو پرله پسې اواز.

**خرچېدل** (xṛačedə́l) مص. ل. ۱) له کلک شي په ماتولو سره اواز پورته کېدل؛ ۲) د ټوپکو ونه وهل کېدل؛ ۳) تر پښو لاندې کېدل.

**خرڅن** (xṛacán) ص.نر.م. خراشکن، هغه څوک چې ډېر خراچکي توکوي.

**خرز** (xṛaz) نر.م. ۱) ګرز، د یوه شي د غورځېدلو اواز ۲) وچ توخی.

**خرزول** (xṛazawə́l) مص.مت. ۱) ګرزول، له یوه شي څخه په غورځولو سره اواز ایستل؛ ۲) وچ توخی کول؛ ۳) د دروازې پورې کول.

**خرزهار** (xṛazahā́r) نر.م. ۱) خرزی، ګرزهار، د یوه شي د غورځېدلو اواز، وچ توخی.

**خرس** (xṛas) نر.م. د کلک او سخت شي د ماتېدلو اواز؛ په څپېړې د وهلو اواز.

**خرسا** (xṛasā́) ښځ.م. ۱) خرسهار، د سخت شي د ماتېدلو پرله پسې اوازونه.

**خرسان** (xəṛsā́n) نر.م. کوره سان، یو ډول سپین نخي توکردی.

**خرسترګی** (xəṛstə́rgay) ص.نر.م.مج. شرمنده، خجل، ملامت، بې شرم، مرسترګی.

**خرسند** (xṛasánd) ص. نر.م.ج. ۱) کرسند، ژر ماتېدونکی لرګی؛ ۲) بې ځایه غږېدونکی.

**خړسول** (xṛasawә́l) مص. مت. ۱) په لرګی، لښته یا څپېړې سره وهل؛ ۲) ډزول؛ ۳) په ماتېدلو سره له یوه شي څخه اواز راایستل.

**خړسه** (xṛása) ښځ.م. ټکه، آفت، تندر.

**خړسهار** (xṛasahā́r) نر.م. خړسې، د لرګیو یا کوم بل شي د ماتېدلو پر له پسې اواز.

**خړکی** (xuṛkáy) نر.م. د مایعاتو د وتلو اواز.

**خړکی** (xәṛakáy) ص. نر.م. ۱) د خړ تصغیر؛ ۲) خوارکی، ساده؛ ۳) داماني دورې له (٤٥) پولو سره انډوله سکه.

**خړګاوه** (xәṛgāwá) ښځ.م. خړې اوبه، د سېلاب خړه، نېزوبی، ختولې اوبه..

**خړل** (xaṛә́l) مص.مت. ډکې متیازې کول.

**خړلمی** (xәṛlә́may) نر.م. سنجاب، له پیشو څخه وړوکی او لکۍ یې اوږده او ببره ده، په ونو کې ژوند تېروي.

**خړمټ** (xәṛmáṭ) نر.م. ګرنګ، قنې، خنې.

**خړموټ** (xaṛmóṭ) نر.م. د کوچنانو یو لوبه ده.

**خړمور** (xәṛmór) نر.م. ښاړی، ...رکې په اندازه یوه غرنۍ خړ رنګې مرغۍ ده.

**خړن** (xәṛán) ص. نر.م. ۱) غولن؛ ۲) یو ډول سارانی تریو خوندی بوټی دی.

**خړنج** (xṛanj) نر.م. بېکاري، وراني، بې اتفاقي.

**خړند** (xṛand) نر.م. ۱) سته، ډنډر، تنه؛ ۲) مونډ، د فصل له رېبلو وروسته چې کوم شی په ځمکه کې پاتېږي.

**خړنګ** (xṛang) نر.م. خادمې، سارانی شرموښکې سارایي شرمښکی.

**خړنګی** (xṛangáy) نر.م. شینشوبی، یو ډول بوټی دی چې ګل یې شین او پاڼې یې خړې دي.

**خړنه** (xaṛә́na) ښځ.م. ډکو متیازو ته تلنه.

**خړوالی** (xәṛwā́lay) نر.م. ۱) خړ رنګ لرنه؛ ۲) تتوالی؛ ۳) خجالت، خجلتوب، شرم.

**خړوب** (xaṛób) نر.م. ۱) پنه، ښه اوسه کونه؛ ۲) اخېړ، خړوبی، د اخېړ اوبه.

**خړوبګری** (xaṛobgáray) فا.نر.م. ۱) ختهګر، اخېړګر؛ ۲) هغه څوک چې له ګچ څخه د ښیانو په جوړولو کې مهارت ولري.

**خړوبن** (xaṛobán) ص. نر.م. په خړو اوبو لړل.

**خړوبول** (xaṛobawә́l) مص. مت. ۱) پنه کول، سېرابول؛ ۲) ودانۍ سپینول، ودانۍ ته خړوبی ورکول.

**خړوبی** (xaṛobáy) نر.م. ۱) د اخېړ اوبه، په اوبه کې حل شوې خټه؛ ۲) اړوب، یو ډول سسته او نرمه لښتۍ ده چې پسونو ته یې ورکوي.

**خړوبېدل** (xaṛobedә́l) مص. ل ۱) سېرابول، پنه کېدل، ښه اوبه کېدل؛ ۲) ودانۍ سپینول.

**خړوپ** (xṛūp) نر.م. غړوپ، په ټینګ او بلن څیز کې د بل شي د غورځېدلو یا ډوبېدلو اواز.

**خړوپول** (xṛūpawә́l) مص. مت. په ټینګ او بلن څیز کې د بل شي د غورځولو سره اواز ایستل.

**خړوپی**[1] (xaṛopáy) نر.م. ۱) بې خونده نګولی؛ ۲) تودې شلومبې.

**خړوپی**[2] (xṛupáy) نر.م. تولی، د لرګي ډډه میله ده چې د ختو ګولۍ په کې د خولې د پوکې په زور سره د هدف خواته غورځول کېږي.

**خړوز** (xṛūz) نر.م ۱) د ټوپک د ډز اواز؛ ۲) پساو، پسمانده اوبه، کونوبی.

**خړوس** (xṛūs) ص. نر.م. ۱) بې غیرته، بې ایمانه؛ ۲) خړس، د یوه شي د غورځېدلو اواز.

**خړوستوب** (xṛūstób) نر.م. بې همتي، بې غیرتي، جړوستوب.

**خړوسکه** (xṛúska) ښځ.م. ۱) غړوسکه، ګڼ لوګی ۲) تهېزه بدبويي، د دوزې، غوړسکې، دوزه؛ ۳) ښه بوی لپاره هم راځي.

**خړول** (xəṛawə́l) مص. مت. ۱) خړ رنګ ورکول، سپېره کول؛ ۲) مغلوبول، شرمول؛ ۳) په اوبو کې خاورې اچول.

**خړونکی** (xəṛū́nkay) نر.م. د کومتيازو کوونکی.

**خړه** (xə́ṛa) ښځ.م. ۱) نېز راورې خته؛ ۲) تياره ماښام، تياره سهار؛ ۳) دښمني؛ ٤) تته وريځ.

**خړه پښتنه** (xəṛapaṣtanā́) ښځ.م. س.وچه پښتنه، ساده پښتنه.

**خړی** (xəṛáy) ص.نر.م. ۱) خښتيو؛ ۲) نر.م. نس، ګېډه؛ ۳) غول، سوته؛ ۳) کومه ره چې د ييوې پر وخت کې کوندې نيولې وي

**خړۍ** (xṛay) ښځ.م. و ګ. خړانګه.

**خړۍ پړۍ** (xaṛaypaṛáy) ښځ.م. زارۍ، عذر، ځان تيټ ښودنه، خړتۍ پړتۍ، سينتۍ.

**خړيت** (xrít) ص.نر.م. ۱) بونجا، پيت پزی؛ ۲) ښخي زوړ، خوړين؛ ۳) زوړ، بوډا.

**خړيتول** (xṛitawə́l) مص.مت ۱) پيتول، چيتول، پيخول؛ ۲) زړول، خوريول، ورستول.

**خړيتی** (xṛitay) ص. نر.م. پيت پزی، پلن پزی.

**خړيتېدل** (xṛitedə́l) مص.ل ۱) پلنېدل، چيتېدل؛ ۲) زړېدل، ورستېدل؛ ۳) بوډا کېدل.

**خړيج** (xṛij) نر.م. جوړ، ډنډ، حوض، تالاو.

**خړيچ** (xṛič) نر.م. چوخونيا، چيت پيت، چخريت.

**خړېدل** (xaṛedə́l) مص.ل. ۱) سپېره کېدل، خړ رنګی کېدل؛ ۲) ککړېدل؛ ۳) شرمېدل.

**خړېدل** (xṛedə́l) مص. مت. ۱) په خاورو يا ختو کې دلبوه يا سپي له لاسه دوزې او ګډې رغړېدل ۲) د مال ريخښدل.

**خړيس** (xṛis) ص. نر.م. خړيسن، تورخرت سړی، بې اندازې چاغ سړی، بدشکله او چاغ سړی.

**خړيستوب** (xṛistób) نر.م. بې ډوله چاغوالی.

**خړيسمار** (xṛismā́r) ص. نر.م. ګېډه ور، نسور، ډېر خور، خېټور، خېټو، خړيمار، خورند.

**خړين** (xṛin) ص. نر.م. و ګ. خوړين.

**خړينبو** (xṛinbó) ص.نب. چټل، مردار خور سړی.

**خز** (xaz) نر.م. ۱) تورلمی، بيلونګړی، خږ، خړ، سمور ته ورته يو حيوان دی؛ ۲) ځيږه شړی، شډله شړی، ځيږه کمبله.

**خزان** (xazā́n) نر.م. ۱) منی، د کال دريم موسم؛ ۲) مړاوی، شيته، جينګړ.

**خزانول** (xazānawə́l) مص.مت. ۱) مړاوی کول، جينګړول؛ ۲) مج. رژول، تويول.

**خزانه** (xazānā́) ښځ.م. د سکو زېرمه، د سرو او سپينو زېرمه، د پيسو زېرمه.

**خزانه دار** (xazānadā́r) ص.نر.م. صراف، خزانه چي، د خزانې ساتونکی او مسوول سړی.

**خزانېدل** (xazānedə́l) مص. ل. ۱) مړاوي کېدل، شيته کېدل؛ ۲) رژېدل، تويېدل، تلېدل.

**خزدکپوه** (xazdakpóh) ص. خزدک (حشره) پېژاند، خزکپېژندنه.

**خزدکپوهنه** (xazdakpohə́na) ا. د خزدکو پېژندنه.

**خزدکه** (xazdáka) ښځ.م. ګونګتې، ګونګټه، غوزاړی، غوزانې، مرغتانه.

**خزری** (xazə́ray) نر.م. ۱) ذره، ښخي وړوکی؛ ۲) اتام، خخوزی، د دوډۍ پوتی.

**خزله**[1] (xazə́la) ښځ.م. و ګ. خځله.

**خزله**[2] (xazlá) ښځ.م. يو ډول بوټی دی چې کالي پرې مينځي.

**خږمه** (xaẓmá) ښځ.م. خـزه، باره، د ښـو ځای، پټوزی، ځارځای، ښکارنه د پټېدو ځای.

**خږنده** (xazandá) ښځ.م. خوزندکی، حشره.

**خږوکه** (xaẓúka) ښځ.م. د خوشابو چنجی.

**خږه** (xaẓá) ښځ.م. ۱) وګ.: خږمه؛ ۲) کاسه، پیاله.

**خږیزګی** (xazizgáy) نر.م. هغه وړ مېږ او زخه چې په چارګل او ښځینه پسرلونو باندې وي.

**خږ** (xaẓ) نر.م. ۱) خړا، د مال د حلالـولو په وخت د هغه له ستونه اواز؛ ۲) وګ. خر؛ ۳) د زخم تر جوړېدو وروسته پترکی یا خپګ.

**خږکی** (xaẓkáy) نر.م. د ناروغ د سینې غږ.

**خږهار** (xaẓhā́r) نر.م. خـرهار، خږکی، د ناروغ د سینې پرله پسې اواز.

**خس** (xas) نر.م. ۱) لږ شی، ووړ شی؛ ۲) کک، بې ارزښته شی؛ ۳) لرګی، د سون مواد؛ ٤) پرېوان، پېهروان، د جنین پرده.

**خسا** (xsā́) ص. نب. وګ. خوسا.

**خساره** (xasārá) ښځ.م. ۱) زیان، تاوان، نقصـان؛ ۲) د زیان پیسې.

**خسبون** (xasbū́n) ص. نـر.م. ۱) هغه څـوک چې کسب یې د لرګو راوړل او خرڅـول وي؛ ۲) هغـه څوک چې په ژمي کې جوماتونو ته لرګي راوړي او د جومات کارکوي.

**خسبه** (xasbá) ص. نر.م. لرګبه، لرګي راوړونکی، لرګي ټولوونکی، بوټي کوونکی.

**خس خس** (xasxás) ص. نـر.م.ج. ټیکـه ټیکـه، ټوټه ټوټه، ذره ذره، ټوټې ټوټې، ریز مریز.

**خسړی** (xasáṛay) نر.م. وګ. خسنی.

**خسزکی** (xasə́zkay) نر.م. خڅـوسکی، اتام، د ډوډۍ میده ګي، د ډوډۍ خسوزی.

**خسک** (xasák) نر.م ۱) منګوره، کتمل؛ ۲) خائنه د کوچنیانو یوه ناروغي ده؛ ۳) ص. نر.م.مج. کم اصله مېوې (توت ...)

**خسمان** (xasmā́n) نـر.م. خسنی، خسنکی، وړه خـړه حشره ده چې خځـلې وړي؛ ۲) ضـامـن؛ ۳) مج. مضر، متشبث.

**خسمانګر** (xasmāngár) ص. خسمانـوال، پټی اېښوونکی، خواخوږی، رنځور.

**خسمانه** (xasmāná) ښځ.م. پالنه، غمخـواري، روزنه؛ ۲) ضمانت.

**خسنی** (xasə́nay) نر.م. د پارو یا امبار ډېران.

**خسڼکی** (xasəṇkay) نر.م. ۱) د کـوچنیانو یوه لوبه ده؛ ۲) یو ډول حشره ده، خسمان.

**خسڼی** (xasə́ṇay) نر.م. ۱) خس، خاشاک؛ ۲) یو ډول حشره ده، خسڼکی.

**خسوزه** (xasū́za) ښځ.م. خڅنکی، خسـوړه، وړه ذره، کوچنۍ ذره، وړه ټوټه.

**خسوف** (xusū́f) نر.م. تندره، بر، سـپوږمۍ نیول کېدل، سپوږمۍ تندر نیول.

**خسي** (xasí) ص. نـر.م. اخته، خصي، تکـېدلی؛ هغه حیوان چې خوټې یې تکول شوي وي.

**خسی**[1] (x(u,ə)sáy) نر.م. وګ. خوسی.

**خسی**[2] (xsay) نر.م. ۱) یو ډول غرنی بوټی دی؛ ۲) للون، خپشاوه، ګوړ.

**خسیل** (xasíl) نــر.م. د څارویو لپاره د شنو غنمو رېبل شوې برخه.

**خشايي** (xušāyí) نر.ج. خوشايي، دغوا خوشايي.

**خشنګ** (xašáng) ص. نر.م. ۱) شـوخ، ناارامه؛ ۲) تورېدونکی، ترهېدونکي.

**خشنګي** (xašangí) نر.م. شوخي، سرکشي.

**خشنه** (xašəná) نر.ج. خاشنه، خرشین، لهو.

خشوی (xašóy) نر.م. خرشین، خوشایي.
خښ (xaṣ) ص.نر.م.ج. ۱) ښخ، د ښخ اړولی شکل ۲) کښېنول شوی (لکه نیالگی).
خښتگ (xaṣtág) نر.م. ژبونی، چات، خشنگ.
خښتگی (xaṣtagáy) نر.م. ۱) ترخز، هغه وړه درې کونجه توکر چې د کمیس په تخرگ کې د لویوالي او کلکوالي لپاره وراچول کېږي؛ ۲) د خښتگ تصغیر.
خښوالی (xaṣwā́lay) نر.م. ښخوالی، ښختوب.
خښول (xaṣawə́l) مص.مت. ۱) ښخول، دفن کول؛ ۲) ننه ویستل، ننه باسل.
خښی (xaṣay) نر.م ۱) تغر، گلم؛ ۲) ښخی، شیخا چې خښي خېل پښتانه (یوسفزي، ترکاني، گگیاني) یې اولاده ده.
خښېدل (xaṣedə́l) مص. ل ۱) ښخېدل، تر خاورو لاندې کېدل؛ ۲) ننه ویستل کېدل.
خصلت (xeslát) نر.م. خوی، عادت، غوني، ذاتي صفت، کرکتر.
خصم (xasm) نر.م. دښمن، مرخی، میرخمن.
خصوص (xusū́s) نر.م. خاصول، خاص او منفرد کول، د عموم مقابل، ځانگړونه.
خصوصاً (xusūsán) ق. په تېره، بیا چې، علی الخصوص، په تېره بیا، په تېره تېره.
خصوصي (xusūsí) ص.نب ۱) خاص، ځانگړی، یوازېنی؛ ۲) په خاص ډول؛ ۳) شخصي، ځاني.
خصوصیت (xusūsyát) نر.م. ۱) خاصوالی، ځانگړتیا، ځانتیا، ځانگړیتوب؛ ۲) خاص خوی او صفت، مشخصه؛ ۳) نېږدې اړیکه لرنه.
خصومت (xusūmát) نر.م. دښمني.
خصي (xasí) ص.نر.م. وگ. خسي.

خضوع (xuzū́s) ښځ.م. تواضع، کمیني، عاجزي.
خط (xat) نر.م. (ج. خطونه) ۱) لیک، لیکنه؛ ۲) نق. کرښه، لیکه؛ ۳) پټلی، د رېل خط؛ ٤) قطار، کتار، لین.
خطا (xatā́) ښځ.م ۱) تېروتنه، غولېدنه؛ ۲) ص. نب. (مج.) کم اصل، کم جنس، بدذات.
خطاب (xitā́b) نر.م. چاته بیانیه ورکونه، چاته وینا کول، چاته خبرې کول.
خطابه (xitābá) ښځ.م. ۱) وینا، بیانیه، خبرې کونه؛ ۲) خطبه ویل، خطیب کېدنه.
خطاط (xatā́t) ص. نر.م. کښاند، مشاق، خوش نویس.
خطاطي (xatātí) ښځ.م. ۱) ښکلې لیکنه، ښه کښنه؛ ۲) د ښه او فني خط کښلو کسب.
خطاکار (xatākā́r) ص.نر.م. تېروتونکی، سهوه کوونکی، غلط کار کوونکی، گناهکار.
خط السیر (xatosáyr) ص. نر.م. تگ لار، د حرکت پلو، تگلور، یونلور، د حرکت لوری او سمت.
خطا یستل (xatāaistə́l) مص. مت. غولول، خطا کول، تېر ایستل، تېر باسل.
خطاوتل (xatāwatəl) مص.ل. غولېدل، تېروتل.
خطایي (xatāyí) ښځ.م. سهوه، غلطي.
خطبه (xotbá) ښځ.م. ۱) خطابه، د خطیب خبرې؛ ۲) موعظه، پند؛ ۳) هغه دعا چې د جمعې تر لمانځه د مخه او د اخترونو تر لمانځه وروسته ویل کېږي.
خطر (xatár) نر.م. ۱) خطره، هلاکت ته نېږدې؛ ۲) ضرر؛ ٤) دځاني یا مالي زیان احساس.
خطرناک (xatarnā́k) ص. نر.م. خطرلرونکی، زیانمن، هلاکت او تباهۍ ته نېږدې کوونکی.

**خط کش** (xatkáš) نر.م. لیکي ـ د کرښې د ایستلو آله.

**خط مشي** (xatemáše) ښځ.م. کړنلاره، مشي، پالیسي، سیاست.

**خطمي** (xatmí) ښځ.م. ۱) خیروګل، توته ګله، یو بوټی دی چې سور او سپین ګل لري.

**خط والا** (xatwālá) ص. نب. باسواده، لوستی، په لیک او لوست پوه.

**خطیب** (xatíb) ص. نر.م ۱) واعظ، خطبه ویونکی ۲) ویندوی، نطاق، ویاند.

**خطیر** (xatír) ص. نر.م. غټ، ستر، مهم.

**خفا** (xafā́) ق. پټ، په پټه، پټ په پټه.

**خفت** (xifát) نر.م. سپکاوی، سپکوالی، سپکتیا.

**خفک** (xafák) نر.م. و ګ. خپک.

**خفګان** (xafgā́n) نر.م. و ګ. خپګان.

**خفه** (xafá) ص.نب. و ګ. خپه[1].

**خفي** (xafí) ص. نب. پټ، ناخرګند، غلی؛ خفي لیک: یو ډول کوچنی لیک دی.

**خفیف** (xafī́f) ص. نر.م. ج. ۱) سپک، کم وزنه؛ ۲) لږ، کم، ؛ ۳) تت؛ خفیف بړغ.

**خل** (xal) نر.م. ۱) عقیده، باور؛ ۲) امید، هیله.

**خلا** (xalā́) ښځ.م. خالیګاه، تش ځای، تشوالی، په فضا کې خالي ځای.

**خلات** (xalā́t) نر.م. ۱) خلعت، د امیرانو او واکمنو له خوا چا ته بخښل کېدونکي جامې؛ ۲) هغه پیسه چې د ښاوي (زوم) له خوا د ناوې ماما ته ورکول کېږي؛ ۳) د کوژدې په غونډه کې پر ناستو خلکو د هلک او نجلۍ د پلارد پیسو وېشنه.

**خلاص** (xlās) ق. ۱) خوشې، پرانیستی؛ ۲) آزاد؛ ۳) تمام، ختم؛ ٤) وزګار؛ ٥) انزال.

**خلاصوالی** (xlāswā́lay) نر.م. ۱) بېرته والی؛ ۲) آزادوالی؛ ۳) ختموالی؛ ٤) بشپړوالی.

**خلاصول** (xlasawə́l) مص. مت. ۱) آزادول، خوشې کول؛ ۲) بېرته کول؛ ۳) تمامول، فیصله کول؛ ٤) رنځول؛ ٥) انزالول.

**خلاصون** (xlāsū́n) نر.م. ۱) آزادوالی، آزادي، نجات؛ ۲) خلاصېدنه، دجګړې خلاصونه.

**خلاصه** (xolāsá) ښځ.م. لنډیز، لنډون، لنډه، تلخیص.

**خلاصه خوله** (xlāsaxwlá) ښځ.م. بوزګی، له روژې نه پرته نور وختونه.

**خلاصېدل** (xlāsedə́l) مص. ل. ۱) آزادېدل؛ ۲) بېرته کېدل؛ ۳) شپېړېدل؛ ٤) رنځل کېدل؛ ٥) انزالېدل.

**خلاف** (xilā́f) نر.م. ۱) ورانی، مخالفت؛ ۲) مج. دروغ؛ ٤) نابرابروالی؛ ٥) سرغړونه.

**خلافت** (xilāfát) نر.م. ځایناستي، د پیغمبر جانشیني؛ نیابت، امارت، امامت.

**خلاق** (xalā́q) ص. نر.م. ج. پیدا کوونکی، رامنځ ته کوونکی، جوړوونکی، ابتکار کوونکی.

**خلاقیت** (xalāqyát) نر.م. ابتکاري قدرت، د خلقولو قوه، د ابداعي تخیل توان.

**خلال** (xilā́l) نر.م. ۱) د هر شي منځ؛ ۲) په اوداسه کې د ګوتو تېرول؛ ٤) نرۍ لرګی چې له غاښو ځخه د ډوډۍ ذرات پرې راباسي؛ ٥) د نارنج پوستکی یا ګازره چې نرۍ نرۍ پرې شي.

**خلاملا** (xalāmalā́) ص. نب. صاف، بې ریا.

**خلباندی** (xalbāndáy) ص. نر. باوري، یقیني، اعتمادي.

**خلپل** (xalpál) نر.م.ج ۱) خس او خاشاک، خځلې ۲) د کونځلې میده خاورې، خلپلې، ذرې.

خلپلکې (xalpalake) ښځ.ج. خامپلکې، د چرګ لتکې، په خاورو کې د چرګ پښې وهل.
خلتکه (xaltáka) ښځ.م. د بېړیو یو ډول لوبه ده.
خلته (xaltá) ښځ.م. کڅوړه.
خلتیمۍ (xaltiməy) ښځ.م. د ښځو د وېښتانو کڅوړه یا خلته.
خلچن (xalčán) ص. نر.م. چخن، خیرن، ناولی.
خلچی (xalčáy) ص. نر.م. خېرن، خچن، پخن.
خلځکی (xalǰakáy) نر.م. د لاسي څرخي لرګی.
خلخلکی (xalxalákay) نر.م. ګوته کول، ګوت لوبه، د ژمي یو ډول لوبه ده.
خلستر (xalastár) ښځ.م. زره برستن، امبارځی.
خلص (xulás) ص. نر.م. ج. لنډیز، لنډون، لنډ.
خلط (xalt) ص. نر.م. ج. ګډ، ګډوله، ګډ شوی.
خلع (xalʕ) ص. نب. ۱) موقوف، ایسته، برطرف؛ ۲) فق. وتل؛ هغه طلاق چې د مال په بدل کې ورکړی شوی وي.
خلعت (xalʕát) نر.م. وګ. خلات.
خلف (xaláf) نر.م. ۱) زوی؛ ۲) صالح اولاد؛ ۳) د چا ځای نیوونکی، جانشین.
خلق[1] (xalq) نر.ج. ۱) پیدایښت؛ ۲) خلک، ولس
خلق[2] (xolq) نر.م. ۱) خوی، عادت، طبیعت؛ ۲) ګوزاره، ژوند.
خلقت (xilqát) نر.م ۱) پیدایښت؛ ۲) خوی، مزاج.
خلق تنګی (xolqtángay) ص. نر.م. دغ، زړه تنګی؛ په هېڅ ساعت نه تېرېدنه.
خلقي[1] (xalqí) نر.م. ۱) ولسي، د خلق، د خلکو؛ ۲) طبیعي، فطري، ذاتي.
خُلقي[2] (xolqí) ص. نب. خوشخویه، خوش خلق.
خلک (xalk) نر.ج. خلق، خلک، اولس، وګړي.
خلکتي (xulkatí) ص. نب. خوړژبی.

خلکه (xalká) ښځ.م. خلکی، اوږد کمیس.
خلکی (xə́lkay) نر.م. غابښ تومبونی.
خلل (xalál) نر.م. ۱) عیب، غش، ضرر، نقص؛ ۲) فساد، ورانی.
خللي (xalalí) ص. نب. ۱) ضرري، تاواني، زیان رسوونکی؛ ۲) فساد پیدا کوونکی.
خلنج (xalánj) نر.م. (ج. خلنجان) بدخونده توب، خسک توب، هغه توت چې دانې ولري.
خلنځه (xlanǰá) ښځ.م. د ښېرې لوبه ونه.
خلوت (xlot) ص. نر.م. بې واکه، کاواکه.
خلوت (xilwát) نر.م. ۱) ګوښه کېدنه، انزوا، ګوښه ګیري؛ ۲) منزوي ځای، ګوښې ځای.
خلوتي (xilwatí) ص. نر.م منزوي، ګوښه نشین.
خلود (xulū́d) نر.م. همېشه توب، تل تر تله والی.
خلوص (xulū́s) نر.م. اخلاص، صمیمیت، پاکي، سادګي، د زړه له کومې.
خلونی (xəlwanə́y) ښځ.م. یو ډول غرنی بوټی دی چې د چنو په اندازه مېوه لري.
خلوښته (xalwetá) ص. نب. تش، ګوګ، خالي.
خلوښتي (xalwetí) ښځ.م. ډډوالی، تشوالی.
خلی (xə́lay) نر.م. ۱) ډکی، خس، خاشه؛ ۲) ښځ. غوټۍ، کلۍ، د ګل غوټۍ؛ ۳) منځغړی، د برېښنا عایق.
خلیج (xalíj) نر.م. (جغ.) په سمندر کې د اوبو یوه برخه چې په وچه کې ورانددې تللې وي.
خلیفه (xalifá) نر.م. ۱) د پیغمبر جانشین، ځای ناستی؛ ۲) د خلافت مشر؛ ۳) کسبګر.
خلیق (xalíq) نر.م. ۱) وړ، لایق؛ ۲) د ښه خوی او خلق خاوند، د ښه خصلت خاوند.
خلیل (xalíl) ص. نر.م. رښتیانی ملګری، دوست.
خلیلي (xalilí) نر.م. یو ډول انګور دي.

**خم**[1] (xum) نر.م. مټ، چاټي، لوی خاورین لوښی دی چې سرکه یا اوبه یا شراب په کې اچوي.

**خم**[2] (xam) ص.نر.م. ۱) کوږ، کوپ؛ ۲) ټیټه ځمکه چې اوبه په آسانۍ سره ورته رسېږي.

**خمار** (xumā́r) ص.نر.م.ج. ۱) نشه، مست؛ ۳) د نشې وروسته کسالت.

**خماري** (xumārī́) ص.نب. ۱) نشه يي؛ ۲) نشه يي شيانو ته هوا کېدل؛ ۳) سرې سترګې.

• **خمازوری** (xamāzū́ray) نر.م. خمزوری، شپیانګه، یو ډول نبات دی چې که په شیدو کې واچول شي شیدې پوڅه کېږي.

**خمبه** (xambá) ښځ.م. ۱) زېرمه تون، ګدام؛ ۲) غټه کندو؛ ۲) ګودرې، د کوټې وسې.

**خمپاره** (xampā́ra) ص.نب. ۱) ارت، پراخ؛ ۲) د هغه کاریز څاه چې سر یې لوڅ وي.

**خمتا** (xamtā́) ښځ.م. بیستی، کرباس.

**خمتینه** (xamtiná) ښځ.م. سترنجی، دری.

**خمټ** (xamə́ṭ) ص.نر.م. چاغ او شلند، مزی.

**خمټتوب** (xaməṭṭób) نر.م. چاغوالی، مزی توب.

**خمټې** (xamə́ṭe) ښځ.م. د ډوډۍ غټې مړۍ.

**خمټېدل** (xamaṭedə́l) مص.ل. چاغېدل.

**خمچ** (xamə́č) ښځ.م. باجره، یو ډول غله ده.

**خمچکې** (xamə́čke) ښځ.م. نوکارې، شوکارې.

**خمچه** (xamə́čá) ښځ.م. ۱) خمچه ګوته، کچنۍ ګوته؛ ۲) د چرګ پنجې؛ ۳) باجره؛ ٤) د ګونو او سپېرو وهلو جوارو په څېر غله؛ ٥) ګوته، د ګوتې پسول؛ ٦) د پسه لاندنۍ وره پوښتۍ.

**خمچۍ** (xamačə́y) ښځ.م. خچنه ګوته.

**خمچې** (xamə́če) جن. د وریجو ترپاکولو وروسته د وریجو واړه ذرات او پوستکي.

**خمڅه** (xamə́ca) ښځ.م. خمڅه، کروتو زدوونه.

**خمر** (xámar) جن. ۱) هره هغه مایع چې نېشه راولي؛ ۲) شراب.

**خمری** (xomrúy) ښځ.م. ۱) کټوی؛ ۲) کچکول؛ ۳) د فقیرانو د پخلي لوښی؛ ٤) د لمانځه مُصلی.

**خمسور** (xamsór) نر.م ۱) منی، خزان، د منې پیل؛ ۲) ص. آزاد؛ ۳) جفت، جوړه، ملګری.

**خمسورتوب** (xamsortób) نر.م. ۱) آزادي؛ ۲) جفتوالی، جوړه والی، ملګرتیا.

**خمسورول** (xamsorawə́l) مص.مت. ۱) آزادول؛ ۲) جوړه کول، ملګري کول.

**خمسوري** (xamsorí) ښځ.م ۱) آزادي ۲) ملګرتیا

**خمسوری** (xamsoráy) ص.نر.م. ۱) خپلواک؛ ۲) ملګری، جفت.

**خمسورېدل** (xamsoredə́l) مص.ل. ۱) آزادېدل ۲) جوړه کېدل، ملګری کېدل.

**خمسوز** (xamsóz) ص.نر.م. خام سوز.

**خمسه** (xámsa) ښځ.م. هغه غنم یا اوربشې چې راشنه شوي او د ځمکې مخ یې پټ کړی وي.

**خمکاره** (xamkā́ra) ښځ.م. د زرتارو د ګنډلو بو نقش یا انځور دی.

**خملی** (xmaláy) نر.م. هغه ګرنګ (قني) چې له پوزې راځوړند وي.

**خمن** (xamán) ص.نر.م. خمیغ، کوږ، پېچلی.

**خمنډ** (xamanḍ) ص.نر.م. شلند، چاغ، مزی.

**خمنډک** (xamanḍə́k) نر.م.ج. کونډۍ، خمندک، یو ډول خزنده ده.

**خمنول** (xamanawə́l) مص.مت. کړول، تاتول، لنډی کول.

**خموچم** (xamočám) ص.نر.م. ۱) تګي برګي، چمبازي، چلبازي؛ ۲) ناز و نزاکت.

**خميركى** (xamirkáy) ښځ.م. د مالګې لوښى، د مالګې منګوټى.

**خميره** (xamirá) ښځ.م ۱) د اوړو تومنه، خمبيره، هغه اوړه چې پخولو ته تيار وي؛ ۲) بيه وهنه.

**خميز** (xamíz) ص. نر.م كږېدونكى، ناڅېدونكى، كوږ، كوږېدونكى.

**خنارينه** (xanāṛína) ښځ.م. ۱) دارنه، څېرې كونه، څېرونه؛ ۲) ځناورتوب.

**خناق** (xunáq) نر.م. ازغى، اورغى، ديفتري، ديفتريا، د ستوني ناروغي.

**خنتېړى** (xanṭeráy) ص. نر.م. ۱) ګردى، غونډ، كلوله، غونډ منډ؛ ۲) تاو راتاو، منجيله.

**خنثى** (xunsā́) ص. نب. ۱) ايجرا، نربېځى؛ ۲) بې اثره، بې اغېزې؛ ۳) ګر. هغه اسم يا صفت چې نه مذكر وي او نه مؤنث.

**خنجاره** (xanjārá) ښځ.م. ۱) كنجاره، كونجاره؛ ۲) د شمخو دودى؛ ۳) بېروالى، چهشن والى.

**خنجاړى** (xanjaray) ص. نر.م. خوشكى، كوڅه ډب، بې سره، لهږ.

**خنجاړي** (xanjā́ṛi) ښځ.م. وګ. خانچنا.

**خنجر** (xanjár) نر.م. يوه غوڅوونكې آله ده چې دواړې خواوې يې تېرې او سر يې راكوږ وي.

**خنجرى** (xanjaráy) نر.م. د يو ډول غله ده.

**خنجړا** (xanjarā́) ښځ.م. وګ. خانچنا.

**خنجک**[1] (xanják) نر.م ۱) بر ګ پسه ۲) چنګک كنجك، نركوبي، نيځک، خنجكى.

**خنجک**[2] (xinják) نر.م. خينجک، شنې، يوه ونه ده چې مېوه يې غوز لري.

**خنجكې** (xanjake) ښځ.م. تريكې، تويكې.

**خنجى** (xanjáy) ص. نر.م. ۱) خوار، تپ؛ ۲) مج. حقير.

**خند** (xand) نر.م. ۱) دايره، ګرده ليكه؛ ۲) پړاک، ښكاره، د سپېښو يوه لويه ده.

**خندا** (xandā́) ښځ.م. ۱) د خوشحالۍ په وخت كې د شونډو غوړېدل؛ ۲) ريشخند، ملنډې.

**خنداوړ** (xandāwáṛ) ص. خندنى، خندور، مسخره، خندوونكى.

**خنداوو** (xandāwū́) نر.م. ويسال، خوشحال، خنده رويه، مسكى، ورين، خندان.

**خندک** (xandák) نر.م. ۱) منډ، خندق، د دښمن د مخنيوي لپاره كيندل شوى كنده؛ ۲) ارهډ، ژوره كنده، مرداز ډنډ.

**خندكى** (xandakáy) نر.م. ګودانګ سپى، خندركى، ګلډانګ سپى، تيكرسپى.

**خندل** (xandə́l) مص. ل. ۱) مسېدل، خندا كول؛ ۲) ريشخند وهل؛ ۳) خوشحالي ښودل.

**خندنى** (xandanáy) ص. نر.م. ۱) دخنداوړ؛ ۲) بې عزته؛ ۳) توكمار؛ ٤) سندرغاړى.

**خندول** (xandawə́l) مص. مت. ۱) په خندا راوستل، مسكى كول؛ ۲) خوشحالول.

**خنده رويه** (xandarū́ya) ص. نر.م. وګ. خندان.

**خندى** (xanday) نر.م. ۱) خندا؛ ۲) ريشخند، پيشاړي، ملنډې، مسخرې.

**خندېدل** (xandedə́l) مص.ل. ۱) خندل، په خندا راتلل، خندا كول؛ ۲) خوشحالېدل.

**خنډ** (xanḍ) نر.م. ۱) پيخ، د چرګ د پښې پيخ؛ ۲) د ونې زخه؛ ۳) سخت ازغى، كلك اغزى؛ ٤) مانع، مشكل، ستونزه.

**خنډک** (xanḍák) نر.م. ۱) وګ. خندک؛ ۲) نر زرک، خنډل.

**خنډكى** (xanḍakáy) ص. نر.م. تيټ قدى، خنډى.

**خنډل** (xanḍál) نر.م. خنډک، نرزرک، خنډيل.

خندمند (xəndmand) ص. نر.م. جاغ، خمت او پېښکي سړی.

خندن (xandən) ص.نر.م. ۱) خنډين، زخمي او خنډ لرونکي لرگي؛ ۲) يو غوټي غوټي لرونکي بوټی دی.

خنډيل (xanḍíl) نر.م. خنډه، خنډک، نرزرک.

خنزير (xanzír) نر.م. سرکوزی، خوگ، سوډر.

خنصر (xinsır) نر.م. خمچه گوته، کوچنۍ گوته.

خنگ (xəng) ص. نر.م. ۱) جامد، کلک، سخت؛ ۲) خجل، شرمېدلی، پښېمان.

خنگ توب (xəngtób) نر.م. خجالت، شرمنده گي، خنگتيا.

خنگره (xə́ngra) ښځ.م. ۱) د سرپخه؛ ۲) د غاښو منگ؛ ۳) د چايجوش منگ؛ ٤) کوولی.

خنگری (xangaráy) نر.م. د جولاگانو د تبوکر د اوبدلو لرگی.

خنگول (xangawə́l) مص. مت. خجلول، خړول.

خنگی (xángay) نر.م. لومه، د دام حلقه.

خنگېدل (xangedə́l) مص.ل. شرمېدل، خجلېدل، خړېدل، خړ کېدل.

خنه (xna) ښځ.م. د پښو ډبره، سنگ پای.

خنی (xánay) نر.م. ۱) غرنی مورک، غرنی مږه، خنی، خونی؛ ۲) د نس خاليگاه.

خناپس (xaṇāpə́s) ص. نر.م. گړنگی، هغه څوک چې پزه يې همېشه له گړنگو ډکه وي.

خو[1] (xaw) نر.م. دروغ، غلطي، چل، بدعهدي.

خو[2] (xo) ښځ.م. ۱) خپه، درگيران، ېږی، لگوونی، بڅی؛ ۲) اد. مگر، اما، لېکن، چون؛ ۳) نر.م. يو ډول گنی دی؛ ٤) ښځ.م. عيب، نقص؛ ۵) شک.

خو[3] (xū) ښځ.م. يو ډول نرم غرنی لرگی دی.

خوا (xwā) ښځ.م. ۱) لوري، پلو، اړخ؛ ۲) زړه، خاطر؛ ۳) آرزو، هيله؛ ٤) پوچې شوې څمکه؛ ۵) رابطه، اړيکه؛ ٦) علاقه؛

خوابدوالی (xwābadwā́lay) نر.م. خوابدی، خپگان، زړه بدوالی، زړه بدي، خپه توب.

خوابدی (xwābadáy) نر.م. ۱) خپگان، زړه بدی، مرورتيا؛ ۲) ص. نر.م. خپه، زړه بدی.

خوابدي (xwābadí) ښځ.م. خپگان، خپه کېدنه.

خواپوته (xwāpóta) ص.نب. ۱) خپه؛ ۲) بې اشتها.

خوا په خوا (xwā́paxwā́) ص. نب. څنگ په څنگ، اړخ په اړخ، سره نيږدي.

خواتورن (xwātorán) نر.م. خواتوری، زړه توری، زړه وهلی، متنفر، ترپام بد شوی.

خواجه (xwājá) نر.م. ۱) صاحب، څښتن، خاوند؛ ۲) خسي، خصي، تکول شوی.

خواچپی (xwāčápay) ص. نر.م. بد، مکروه.

خواخوږتيا (xwāxūẓtyā́) نر.م. زړه سوی، خواخوږي، همدردي، خواخوږوالی.

خواخوږي (xwāxūẓí) ښځ.م. زړه سوی، همدردي.

خواخوږی (xwāxū́ẓay) ص. نر.م. زړه سواند، همدرد، غمشريک، زړه سواندی، خوږمن.

خواخوښی (xwāxwáṣay) ص. نر.م. راضي، خوشحال، رضامند، خوښ.

خواخوښي (xwāxwaṣí) ښځ.م. خوښي، رضايت.

خوار (xwār) ص. نر.م ۱) ډنگر، ضعيف؛ ۲) ژوبل ۳) مسکين، غريب؛ ٤) حقير.

خواربرخی (xwārbárxay) ص.م. خواربختی، خوار قسمتی، کم بخت، بدمرغه.

خوارځواکی (xwārǰwā́kay) ص. نر.م ۱) ناتوان، کم ځواکه، خوار، غريب؛ ۲) ضعف، کمزوري.

**خوارکوټی** (xwārkóṭay) ص.نر.م. خوارکوټی، ډېر عاجز، ډېر غریب.

**خوارکی** (xwārakáy) ص.نر.م ۱) خوار، غریب، عاجز؛ ۲) په جسمي لحاظ کمزوری.

**خوارنجوکی** (xwāranjúkay) ص.نر.م. ضعیف، کمزوری، کم قوته.

**خوارنجی** (xwāranjáy) ص. نر.م. ضعیف، کمزوری، ډنګر، خوار، خوارینجی.

**خوارول** (xwārawə́l) مص. مت. ۱) غریبول، مسکینول؛ ۲) په جسمي لحاظ کمزوری کول.

**خواره واره** (xwārə́wārə́) ص.نر.م.ج. خپاره واره، تیت و پرک، تس نس، تار په تار.

**خواري** (xwārí) ښځ.م. ۱) کسب او کار؛ ۲) ربړ، زحمت؛ ۳) نېستي، مفلسي.

**خوارېدل** (xwāredə́l) مص.ل. ۱) غریبېدل، مفلسېدل؛ ۲) ډنګرېدل، ضعیفېدل.

**خواري کښ** (xwārikáṣ) ص.نر.م. زحمتکښ، زیارایستونکی.

**خواړه** (xwāṛə́) نر.ج. ۱) د خوړو شیان، طعام، غذا؛ ۲) د غړکې د رنګولو مساله.

**خواږه** (xwāẓə́) نر.م. ۱) د خوږ جمع، شیریني؛ ۲) هغه غوړي (ویشلي، شل یې) یا حلوا چې په مړي پسې په اوله شپه پخېږي.

**خواږه ولني** (xwāẓəwələ́ni) نر.ج. بادیان.

**خواس** (xwās) نر.م. کبر، غرور، فخر، لويي.

**خواست** (xwāst) نر.م. ۱) ګدایي، غوښتنه؛ ۲) دعا، مناجات؛ ۳) امید، التجا.

**خواستغی** (xwāstáğay) ص.نر.م. ورسترګی.

**خواستګار** (xwāstgā́r) نر.م. غوښتونکی، روبیار، طلبګار، جرګه والا، ریبار.

**خواشینی** (xwāšínay) ص.نر.م. خپه، متأثر.

**خواښې** (xwāṣé) ښځ.م. د ښځې مور، د مېړه مور، د ماندینې مور.

**خواښې توب** (xwāṣetób) نر.م. خواښې والی، د خواښې ګوزاره او چلند.

**خواص** (xawā́s) نر.ج. ۱) ورنېږدې او مقرب کسان؛ ۲) د خاصیت جمع.

**خواګرځن** (xwāgərǰán) ص.نر.م. کرکجن شی، خواګرځېدونکی، قی راوستونکی.

**خواګرځول** (xwāgərǰawə́l) مص.مت. ۱) قی کول، استفراق کول؛ ۲) له نظره بد راتلل.

**خواګرځي** (xwāgərǰí) ښځ.م. ۱) قی، استفراق؛ ۲) نفرت، کرکه، بدلیده، بد راتله.

**خواګی** (xwāgáy) نر.م. ۱) پلوی، پټ کومک کوونکی؛ ۲) د مرد کیو یا غوزانو په لوبه کې هغه غوز چې پټ اېښودل شوی وي.

**خوال** (xwāl) نر.م. و ک: خاوال.

**خوالګر** (xwālgár) ا.م. خوالو، خواله ساتی، همراز.

**خوالو** (xwāló) ص. نب. همراز، محرم راز.

**خواله** (xwālə́) نر.ج. د زړه راز، همرازي.

**خواله ساتی** (xwālasā́tay) ص.نر.م. راز ساتونکی رازمن، رازساتی.

**خوانچه** (xwānčə́) ښځ.م. و ګ. خونچه.

**خواوشا** (xwāwušā́) ق. چارچاپېره، څلورخواوې، شا وخوا، ګرد چاپېره.

**خواه** (xwāh) ور. د نومونو او صفتونو په اخیر کې یو وروستاړی دی- نیمه خواه، بدخواه...

**خواهش** (xwāhíš) نر.م. هیله، امید، غوښتنه.

**خواهشمن** (xwāhišmán) ص. نر.م. هیله من، غوښتونکی، خواهشمند، آرزومند.

**خوایخی** (xwāyáxay) نر.م. زړه سېړېدنه، خوا یخېدنه، خوایخي، زړه یخی.

**خوب** (xob) نـر.م. ۱) ویده کېدنه؛ ۲) رویـا، د بیدېدو په حال کې څه لیدل؛ ۳) تش خیال.

**خوبا** (xubā́) ښځ.م. ښهی، معشوقه، محبوبه.

**خوباني** (xubā̃náy) ښځ.م. زردالو، مندته.

**خوبايي** (xubāyí) ص. نـر. ښـځ.م. ۱) ښـکلا، ښایست؛ ۲) ښه والی، غوره والی.

**خوبجن** (xobján) ص.نر.م. ۱) خـوب نیـولی، خـوب ورتلونکی؛ ۲) ډېر خـوب کـوونکی؛ ۳) خوب راوستونکی.

**خوب خندا** (xobxandā́) ا. ارامي، هـوسـايي، آسوده گي.

**خوبخونه** (xobxū́na) ا.م. خوبکوټه.

**خوبروی** (xubrū́y) ص. نرم. ښکلی، ښایسته.

**خوبژلی** (xobžálay) ص. م. و گ. ،خوبجن.

**خوب کالي** (xobkālí) ا. د خوب کالي یا جامې.

**خوبنکی** (xobánkay) نر.م. یو ډول حشره ده.

**خوب نمري** (xobnmarí) ا. و گ. خوب کالي.

**خوبـور** (xobawár) ص. خـوبـوونکی، خـوب راوستونکی (درمل).

**خوبوړی** (xobawə́ṛay) ص. و گ. ،خوبولی.

**خوبولی** (xobawə́lay) ص. نر.م. ویده، بیده.

**خوبي** (xobí) ص.نب. ډېر خوب کوونکی.

**خوبیونی** (xobū́nay) ص. خـوبـگـرځـی، خـوب چکری، په ویده گرځېدونکی.

**خوپ** (x(o,u)p) نر.م. گرز، غبار، گرد، لړه،.

**خوپړه** (xopṛá) ښځ.م. سخته گرمي، ډېره گرمي.

**خوپن** (xopán) نر.م. بړبوکی، گردباد، کره دوړه.

**خوټ** (xwaṭ,xuṭ) نر.م. د ایشېدلو اواز، ځوښ.

**خوټباد** (xoṭbā́d) نر.م. د خوټو پاړسوب.

**خوټ خوټی** (xū̃ṭxū̃ṭáy) نـر.م. د جـوشـېدو او خوټېدو اواز.

**خوټ خوټی** (xoṭxoṭə́y) ښځ.م. ورو ورو ټوپیانی، ورو کوری، غاوکه، د مرد کېو غاوېدولېه.

**خوټ کښ** (xoṭkáṣ) نر.م. خـرټکابي، تـسوقری، لړیه چونگښه، چنډخ، ځښنځښه.

**خوټکېدل** (xuṭkedə́l) مص. ل. جوشېدل، خوټ خوټی کول، خوټېدل.

**خوټ لون** (xoṭlū́n) نر.م. د خوټو ځای یا کڅوړه.

**خوټنکه** (xūṭanáka) ښځ.م. د ښکلی، ووړه کټوه.

**خوټول** (xūṭawə́l) مص. مت. ایشـول، ځوښـول، جوشول، جوش ورکول، خوټکول.

**خوټه** (xwə́ṭa) ښځ.م. خایه، هګی، خصیه.

**خوټهار** (xūṭahā́r) نر.م. د ایشېدو پرله پسې اواز.

**خوټور** (xwaṭawár) ص. نر.م. ۱) د خوټو خاوند؛ ۲) هغه سړی چې خوټې یې تر عـادي ډول ډېرې غټې وي؛ ۳) مج. شهواني.

**خوټی** (xoṭáy) ص.نر.م. ووړکی، تیتکی.

**خوټېدل** (xūṭedə́l) مص. ل. ایشېدل، جوشـېدل، ځوښېدل، خوټکېدل، یېشېدل.

**خوجه** (xwajá,xojá) ص.نر.م. نامرد، ایجړا.

**خوچکی** (xóčkay) نر.م. د غوښې پوټی.

**خوځند** (xwáǰand) فا.نر.م. خوځنده، خـوځندی، خوځېدونکی، ښوربېدونکی، متحرک.

**خوځندخج** (xwaǰandxáj) گر. زورخج، متحرک فشار.

**خوځندکه** (xwaǰandáka) ښځ.م. حشره، خزنده.

**خـوځـول** (xwaǰawə́l) مـص. مت. ۱) ښـورول؛ ۲) روانول، حرکت ورکول؛ ۳) راپارول.

**خوځه** (xóǰa) ښځ.م. د حیوان د سینې غوښه.

**خـوځـېدل** (xwaǰedə́l) مـص. ل. ۱) ښـوربېدل؛ ۲) په حرکت راوستل کېدل؛ ۳) کوچېدل، تلل؛ ٤) بې ځایه کېدل.

**خوځېن** (xwajín) نر.م. حرکت کوونکی، متحرک.

**خوځ** (xwac) ص. نر.م ۱) ډک، ډېر ډک، تر څنډو؛ ۲) نر.م. گڼه، بهیر.

**خوځول** (xwacawə́l) مص. مت ۱) ډکول، ډېر کول؛ ۲) گڼه گوڼه جوړول، بهیر جوړول.

**خوځ ماخوځ** (xwacmāxwác) نر.م. گڼه گوڼه، غونځېدنه، بهروبار، بهیر، ډېره گڼه گوڼه.

**خوځه** (xóca) ښځ.م. ښوڅه، غار، سوری، سمڅ.

**خوځېدل** (xwacedə́l) مص.ل. ۱) ډکېدل، چخېدل سوڅېدل؛ ۲) غونځېدل؛ ۳) بهیر جوړېدل، خومبېدل.

**خوخی** (xawxáy) نر.م. یو ډول شین بوټی دی.

**خود** (xwad) د. ۱) البته، شاید، پخپله، ممکن؛ ۲) نر.م. سد، واک، اختیار؛ ۲) اد. ځکه.

**خوداختیار** (xwadixtyā́r) ص.نر.م. خودمختار آزاد، مستقل، په خپل واک، خپلواک.

**خود په خوده** (xwadpaxwáda) ق. پخپله، بې واسطې، پخپل سر، په خپله.

**خود خواه** (xwadxwā́h) ص. نب. هغه څوک چې ځان تر نورو لوړ گڼي او یوازې ځان غواړي.

**خود سر** (xwadsár) ص. نر.م. سرایله وبرایله، پخپل سری، خود رایه، خود سری.

**خودښکه** (xwadáṣka) ښځ.م. اې خدایه!، لویه خدایه!.

**خود غرض** (xwadğaráz) صنر.م. خپل چاری، خپل چاروکی، مطلبي، مقصدي، مغرض.

**خودله** (xodalá) ښځ.م. یو ډول نی دی.

**خودمختار** (xwadmoxtā́r) ص.نر.م. خپلواک.

**خودمه** (xodmá) مف. نر.م. ځپلی، وهلی.

**خودي** (xwadí) ښځ.م. ۱) کبر، غرور؛ ۲) خپد خواهي ۳) ځانگړیتوب؛ ٤) سد، بیداري.

**خور**[1] (xor) ښځ.م (ج. خویندې) ۱) د پلار لور، د مور لور؛ ۲) ور. لەنوموړنو سره د وروستاړي په توگه راځي او صفت ترې جوړوي؛ لکه: غمخور ۳) د حال فعل داشکالو بنسټ دی؛ ٤) ص.نر.م. و گ. خپور.

**خور**[2] (xwar) نر.م. ۱) د پوست آش؛ ۲) خېږ، پترکی؛ ۳) پوستکی، جلد؛ ٤) واښه، گیاه.

**خورا** (xwarā́) ص. نب. له ښېخي زیاتو، لږو، ښو، بدو صفتو سره د تاکید په ډول راځي.

**خوراړه** (xurā́ra) ښځ.م. ۱) خوړونکی (رنځ)، برص، جذام؛ ۲) و گ. پړنگ[2].

**خورازک** (xwarāzák) نر.م. و گ. خروسک.

**خوراک** (xwarā́k) نر.م. خواړه، غذا، طعام.

**خوراکتوکي** (xwarāktokí) ا. خوراکي توکي، خوراکي مواد، غذایي مواد.

**خوراکخونه** (xwarākxū́na) ا. ډوډۍ خونه، د خوړلو کوټه.

**خوراکونج** (xwarākwánj) ا. د خوړو مېز، خوراکدړه، د غذا خوړو مېز.

**خوراکي** (xwarākí) ص. نب. ۱) د خوړلو، د خوراک، خوراک سره تړلی؛ ۲) خوړونکی.

**خورانه** (xurā́na) نر.م. ۱) ناسکوللي، هغه ورې چې ورگ یې نه وي سکولل شوی؛ ۲) د مشرې خور لقب.

**خوربللي** (xorbalə́le) ښځ.م. خورینگه، خورینه خوارخونده، په خور نیولې.

**خورج** (xoráj) نر.م. لوی کار، ستره وظیفه، مهم کار، د نوم کار، نامي یا غوره کار.

**خورجۍ** (xorjə́y) ښځ.م. ۱) طبراق، د شپنو ډوډۍ ځولۍ؛ ۲) خورجین.

**خورجین** (x(o,u)rjín) نر.م. دمبله، ښپړدن.

**خورجینه** (xorȷína) ښځ.م. ۱) د غلو خولی، پټه خولی، پشمي خولی؛ ۲) خورجین.

**خورځن** (xorǰán) نر.م. سره خاوره، خورزون، هغه سره متینه خاوره چې تنور ترې جوړوي.

**خورځه** (xorǰá) ښځ.م. دخور لور.

**خورخل** (xwarxál) نر.م. خورخول، د بیاتي په څېر لویه آله ده چې پسونه پرې سکولي.

**خورخوټۍ** (xorxoṭáy) ښځ.م. وګ. حباب.

**خورد** (xward) نر.م. چیټاکی، خوړد، دپاو څلورمه برخه، ۲٤ مثقاله.

**خورده** (x(u,ə)rdá) ښځ.م. خوړده، د زیارت یا د سپېڅلي ځای خاوره.

**خورزن** (xurzán) نر.م. شینګلی، یو ډول کانی دی چې له سرې خاورې سره یو ځای کېږي او تنور او تبۍ ورڅخه جوړوي.

**خورزون** (xurzón) نر.م. ختیه، هغه ځانګړنې چې په ارثي ډول په یو چا کې وي، سرشت.

**خورسک**(۱) (xwarsák) نر.م. خوشالي، قرصک.

**خورسک**(۲) (xursák) نر.م. وګ. خروسک.

**خورسکتوب** (xursaktób) نر.م. خوښي، خوشحالي، خوشالتیا، خوشحالېدنه.

**خورک** (xwarák) نر.م. خوړنه، د خوړلو طریقه.

**خورکوڅی** (xorkawcáy) ښځ.م. د نجونو یوه لوبه ده.

**خورکه**(۱) (xoráka) ښځ.م. ۱) د خور اسم تصغیر؛ ۲) خور یا کوم ښځې ته احترام کلیمه.

**خورکه**(۲) (xawráka) ښځ.م. توپۍ، سروبی، د اوبه څښلو خاورین لوښی.

**خورکی** (xorkáy) ښځ.م. ۱) خورکه، د وړې خور لپاره د ناز کلیمه؛ ۲) د نجونو یوه لوبه ده.

**خورکی** (xūrkáy) نر.م. خُرخُر، خرېدنه، خورهار.

**خورګ** (xwarg) نر.م. خور، خیږ، پترکی، د زخم پر مخ باندې خروکی یا نری پوستکی.

**خورلنه** (xorlána) ښځ.م. ۱) کومه جینۍ چې واده شي نو د پلرګنۍ او د پلار د کلیوالو خورلنه ګڼل کېږي؛ ۲) وګ. خور بللې.

**خورمایي** (xurmāyí) ص. نب. ۱) وګ. خرمایي؛ ۲) یو ډول سره توت؛ ۳) تیرمایي زرد الو.

**خورمن** (xwarmán) نر.م. اشتها، زیاته خوړنه، لوږه.

**خورمنځ** (xwarmánǰ) نر.م. ۱) خواهش، ارزو، هیله؛ ۲) په زړه برابر، په طبع موافق.

**خورمنی** (xormanáy نر.م. مغذي او قوي خواړه، اشتها راوستونکی.

**خورمه** (xormá) ښځ.م. ګرمکې، د مخ وړې داني؛ ۲) پوست وور، نری باران؛ ۳) نری نری خوله؛ ٤) نوې رسېدلې ږیره؛ ٥) کوسه، څیکړ، څوکړ.

**خورنده** (xwárə́nda) ص.نب. ګېډور، خېټور، خېټو.

**خورندی** (xwarə́nday) نر.م. ۱) هغه څوک چې د نوي رسېدلی باغ مېوه اول وار وخوري؛ ۲) نوې مېوه، هغه مېوه چې نوې یې کوي.

**خورنګی** (xurangáy) ښځ.م. وګ. خرونګی.

**خورڼول** (xorṇawál) مص.مت. ۱) بړول، سنول، سکول؛ د پسه د سپړمو اواز؛ ۲) ختل، پسه په مېږه ختل.

**خورڼه** (xwarṇá) ښځ.م. لوځې، ګوشخوره، د نوکانو د لاندني پوستکي پورته کېده.

**خورڼېدل** (xoraṇedə́l) مص.ل. بړېدل، سنېدل، سکېدل، ختل (د پسه ختل پر مېږې).

**خوروکی** (xorukáy) نر.م. ۱) خور، خردکی، خیږ، پترکی؛ ۲) پوست، قشر.

**خورول**[1] (xorawə́l) مص. مت. څوک مړول، څه شی په چا خوړل.

**خورول**[2] (xwarawə́l) مص. مت. ۱) ویړول، اوارول؛ ۲) تیتول، نشرول، خپرول.

**خوروور** (xórwor) ص. نر.م. تیت و پرک، خپور وور؛ ۲) نشر.

**خوره** (xūrá) ښځ.م. ۱) تپ، زخم، پرهار.

**خورهار** (xurahā́r) نر.م. خرهار، پرله پسې خرېدنه خور خور کونه، خورهار.

**خوری**[1] (xwā́ray) ص. نر.م. ډېرخوره، خوراکي، خورنده، زيات خوره.

**خوری**[2] (xawrā́y) نر.م. ۱) خوورين، شينکی، کندول؛ ۲) ذات، نسل، ختنه؛ ۳) گل کنه.

**خوري** (xorí) ښځ.م. خوروالی، خورگلوي، خورتوب، خوارخوانده گي.

**خورۍ**[1] (xorə́y) اً. (د روغتون) نرسه، همشيره، پرستار.

**خورۍ**[2] (xawrə́y) ښځ.م. پټکری، زمچ، پټکری، يو ډول دارو دي.

**خورېدل** (xwaredə́l) مص. ل. ۱) خپرېدل، نشرېدل؛ ۲) ويړېدل، اوارېدل، پلنېدل.

**خورين** (xawrín) ص. نر.م. ج. خاورين لوښی، د خاورو لوښی، خوری.

**خورينگه** (xorínga) ښځ.م. خورينگی، خورينه، خوارخوانده، ديني خور، ملگرې، سوېلۍ.

**خوريی** (xoryáy) نر.م. خوريې، د خور زوی.

**خوړ**[1] (xwaṛ) نر.م. شپله، سم، لگد، د سېلاو د اوبو وچ مسير.

**خوړ**[2] (xūṛ) نر.م. د کانگو آواز، هوق.

**خوړ**[3] (xoṛ) ص. نر.م. تيار، ملاتړلی، چمتو.

**خوړجن** (xwaṛján) ص.نر.م. بدشکله، بدرنگه.

**خوړچ** (xwṛač) نر.م. نسترن غوندې يو اغزن او ببر غرنی بوټی دی، سرې دانې کوي.

**خوړسکه** (xwṛə́ska) ښځ.م. ۱) تريخ لوگی، غوړوسکه، گڼ دود؛ ۲) بدبويي، مرداربوی.

**خوړکی** (xoṛkáy) نر.م. د کانگو کولو اواز.

**خوړگه** (xwáṛga) ښځ.م. ۱) پسته او نرمه ځمکه؛ ۲) زوړ او وروست اسباب؛ ۳) خوړين کالي.

**خوړگی** (xwaṛgə́y) ښځ.م. ۱) رنجه، د توکر زړه لته؛ ۲) کوچنی خوړ، هغه تنگ او ژور ځای چې د نېز اوبه په کې بهېږي.

**خوړل** (xwaṛə́l) مص. مت. ۱) نغرل، خړاړه ژوول او گېډې ته تېرول؛ ۲) چيچل؛ ۳) ژوول؛ ۴) غصبول، د چا په مال خېټه اچول؛ ۵) لگېدل، په گولۍ يا تيره لگېدل؛ ۶) کول؛ ۷) وهل؛ ۸) ځيځېرل؛ ۹) سولول.

**خوړنځی** (xwəṛánǰay) نر.م. هوټل، رستوران، د خوړلو ځای، د خوراک ځای، طعام خوري.

**خوړول** (xwaṛawál) مص. مت. و گ. خورول[1].

**خوړونی** (xwaṛū́nay) مف. نر.م. د خوراک شيان.

**خوړه** (xwáṛa) ښځ.م ۱) لگد، ناو، شيله؛ ۲) د ورا يا واده ډوډۍ؛ ۳) د واده نه يو دوه ورځ مخکې هغه خوراکي شيان يا جنس چې د زوم له کوره د ناوې کورته وروړل کېږي؛ ۴) د کوژدې مراسم.

**خوړهار** (xuṛahā́r) نر.ج. د خړپرله پسې لواز.

**خوړه مار** (xwaṛamā́r) فا.نر.م. ۱) خوړونکی؛ ۲) رشوت خور، بډې خور؛ ۳) وظيفه خور.

**خوړه مشر** (xwaṛaməšar) نر.م. سرخان، د خوړې مشر، د خوړې تنظيمونکی.

**خوړه وال** (xwaṛawā́l) نر.م. د خوړې وړونکی، د خوړې غړی، په خوړه کې برخه اخيستونکی.

**خوړې** (xuṛé) ښځ.م. يو ډول بوټی دی.

**خوږېدل** (xuṛedál) مص. ل. ۱) استغراق کېدل؛ ۲) مرېدل؛ ۳) له اوبو اواز ایستل.

**خوږېدلی** (xuṛedálay) مف. نر.م. ۱) قی شوی؛ ۲) موږ شوی؛ ۳) دجذام په ناروغۍ اخته شوی.

**خوږین** (xwṛín) ص. نر.م. ج. ۱) ډېر پسوخ شوی، خول بل؛ ۲) وروست، شرېدلی؛ ۳) خپه.

**خوږین پږین** (xwṛínpṛín) ص. نر.م. ۱) ببخي پوخ، خول بول؛ ۲) زیات وروست، شرېدلی.

**خوږین توب** (xwṛintób) نر.م. ۱) پخنوب، خوږینتیا، خوږین والی؛ ۲) ورستوالی.

**خوږینول** (xwṛinawә́l) مص. مت. ۱) یخول؛ ۲) ورستول، پوده کول؛ ۳) خپه کول.

**خوږینېدل** (xwṛinedә́l) مص.ل. ۱) پخېدل، زیات پخېدل؛ ۲) ورستېدل؛ ۳) خپه کېدل.

**خوږې وږې** (xwaṛéwaṛé) ص. نب. خوږې تنې، ځلور ځانګې، ځلور اړخه، آرام، بې غمه.

**خوزول** (xwazawә́l) مص. مت. و ګ. خوځول.

**خوږ**(۱) (xwaẓ,xuẓ) نر.م. ۱) درد، ناروغي، مرض ۲) ژوبل؛ ۳) زخمي.

**خوږ**(۲) (xoẓ) ص. نر.م. ۱) دتریخ ضد، شیرین؛ ۲) خوندور، لذیذ؛ ۳) په زړه پورې، ګران.

**خوږاروا** (xoẓarwā́) ص. خوښ اروا، ورین تندی، خوشحوی.

**خوږ ژبی** (xoẓžә́bay) ص. نر.م. هغه څوک چي ډېرې ښې او خوږې خبرې کوي.

**خوږژبي** (xoẓžәbí) ا. خوږوراشي، شیرین زباني.

**خوږغاړی** (xoẓγā́ṛay) ص. خوږ غږی، خوږاوازی.

**خوږک** (xwaẓák) نر.م. یو ډول چینجي دی.

**خوږکمبری** (xoẓkambә́ray) نر.م. سنتره.

**خوږلت** (xwaẓlát) نر.م. ۱) خوږوالی، شیریني خوندوروالی؛ ۲) خوږې خبرې کونه.

**خوږلماړی** (xoẓlmā́ṛay) نر.م. ازارخانی، خوږه مږی، اونت، پړک پړک، کوتکوتی.

**خوږلن** (xuẓlán) نر.م. پوړندی، د سړي اوږ، تر ایرو لاندې اور.

**خوږلنی** (xwaẓlә́nay) ص. نر.م. خوږه لوږی، شیرین وزمه، خوږلوږی، شهرین چک.

**خوږم** (xūẓám) نر.م. سونی، یاسمن، یو ډول ګل دی چې سپین، شین یا ژېړ رنګ لري.

**خوږمن** (xūẓmán) ص. نر.م. ج. ۱) دردمن، درد بدلی، خوږشوی؛ ۲) همدرد، خواخوږی.

**خوږمی** (xūẓmә́y) ښځ.م. یو خوږ لوږی بوټی دی.

**خوږنی** (xwaẓanáy) ا. د خوږې (ګوړې، بوږې، قند) لوښی، قندداني.

**خوږوالی** (xoẓwā́lay) نر.م. شیریني.

**خوږوبی** (xwaẓóbay) نر.م. شربت، خوږ څښاک.

**خوږوکه** (xwaẓū́ka) ښځ.م ۱) څکه، خوند کتنه، نوا؛ ۲) مساله، دنګولي مساله.

**خوږول**(۱) (xwaẓawә́l) مص. مت. ۱) شیرینول، خوږه وراچول؛ ۲) خوندور کول.

**خوږول**(۲) (xūẓawә́l) مص. مت. ۱) زخمي کول؛ ۲) دردول، ژوبلول، زوبلول.

**خوږه** (xwaẓә́) ښځ.م. ۱) شیریني، بوره؛ ۲) مچو، ښکل؛ ۳) د خوږ ښځینه شکل.

**خوږه پلور** (xwaẓaplór) ص. خواږه پلوزونکی، شیریني پلور، دخوږې پلورځی.

**خوږه ساز** (xwaẓasā́z) ص. خوږه (شیرینی) جوړوونکی، مېټهایي جوړونکی، قناد.

**خوږه کاسه** (xwaẓakāsá) ښځ.م. بوله، پښه ارنه، پایوازي، د خسر کره د زوم لومړنی ورتلنه.

**خوږه کی** (xwaẓakay) نر.م. ۱) خوږلن، خوږه لوږی، لږ خوږ؛ ۲) وروه کی، یو ډول بوټی دی.

خوره لوری (xwazalóray) ص. نر. م. خوږلن، خوږ وزمه، خوږ شان، خوږ غوندې، شیرین مزه، شرین چک.
خوره وله (xwazawə́la) ښځ. م. خوږه ولې، شیرین بویه، ددغه بوټي ریښې او بېخ.
خوږېدل[1] (xwazedə́l) مص. ل. ۱) شیرینېدل، خوږه په کې حل کېدل؛ ۲) په زړه پورې کېدل، خوندورېدل.
خوږېدل[2] (xūzedə́l) مص. ل. زخمي کېدل؛ ۲) ژوبلېدل، دردېدل، زوبلېدل.
خوسا (xosá) ص. نب. خسا، گنده، بدبویه.
خوساخولی (xosāxwálay) ص. نر. م. هغه ځوک چې له خولې نه یې بد بوی ځي.
خوساډنډ (xosāḍánd) نر. م. د بوینو اوبو ډنډ.
خوساسارمه (xosāsárma) ښځ. م. یو ډول خوږلن بوټی دی.
خوسابنی (xūsāṣə́y) ښځ. م. خسابنی، شینتغ، شین توپی، یو ډول مرغه دی.
خوساکانی (xosākánay) نر. م. یو ډول کاڼی دی چې لوښې ځنې جوړوي.
خوساوزه (xusāwáza) ښځ. م. و گ. خشاوزه.
خوس خوس (xwasxwás) نر. م. وری وری، د جواری (قمار) یو ډول لوبه ده.
خوسکی (xosakáy) نر. م. خوسی، سخوندر، کوری، گوړکی، سخی، خُسی.
خوسی (xosáy) نر. م. ۱) خوسکی؛ ۲) یو لوبه ده.
خوش (xwaš, xūš) ص. نر. م. ۱) ښه، په زړه پورې؛ ۲) د ځینو مرکبو کلیمو لومړی توکی دی، لکه: خوش اخلاقه..
خوشا تاړی (xošātāráy) ص. نر. م. خوشکی، لهړ، خوشې، سوړ، ایله گرد، خوشتاړی.
خوشاتړ (xošātár) ص. و گ. : خوشاتاړی.
خوشال (xwašā́l) ص. نر. م. ج. ۱) خوشحال، خوښ، خوشاله؛ ۲) د پښتو ژبې وتلی شاعر.
خوشالول (xwašālawə́l) مص. مت. خوښول، خوشاله کول، خوشحالول.
خوشالېدل (xwašāledə́l) مص. ل. خوښېدل، خوشاله کېدل، خوشحالېدل.
خوشاوزه (xošā́wza) ښځ. م. خوساوزه، د لوخې په څېر یو ډول بوټی دی.
خوشایه (xwašā́ya) نر. ج. خوشایي، خوسایي.
خوش خمیره (xušxamíra) ښځ. م. د خمیر شوو اوړو ټکی.
خوشکه[1] (xūška) ص. نر. م ۱) ناحق، بې فایدې، چټی؛ ۲) الفظي جنگ؛ ۳) شکریته.
خوشکه[2] (xwaška) ښځ. م. ۱) قهر، منت، تهدید ۲) وچه، سوکړه، وچکالي.
خوشکی (xwašakáy) ص نر. م ۱) و گ. خوشاتاړی ۲) لهړ، سوړ، ایله گرد.
خوشکي (xūškí) د کاغذ باد نازک کاغذ.
خوشلاړي (xwašlā́ṛi) نر. ج. د ښاروي ریخ.
خوشلړ (xwašláṛ) نر. م. له خوشیو سره گډه شوې خاوره؛ ۲) جنجال، دعوه، دنگله، لانجه، شخړه.
خوشمړي (xwašmáṛi) نر. ج. نغدې پیسې.
خوشې (xwáše) ق. ۱) چټي، عبث؛ ۲) وریا، مفت؛ ۳) خلاص، آزاد؛ ٤) تش، خالي.
خوشی (xošáy×) ښځ. م. دماشي په څېر یوه خزنده ده.
خوښ (xwaṣ) ص. نر. م. ج. ۱) راضي، خوشاله، خوشحال؛ ۲) غوره، چوڼ شوی، منتخب.
خوښاړه (xoṣā́ra) ښځ. م. د مېوه یي ونې گل.

**خوښمن** (xwaṣmán) ص. نر.م. ۱) غوره کوونکی، خوښوونکی؛ ۲) خوښ، خوشحال، خوشاله.

**خوښور** (xwaṣwár) ص. د خوښې ور، د رضایت ور.

**خوښول** (xwaṣawə́l) مص. مت. ۱) خوشالول، راضي کول؛ ۲) غوره کول، چانول.

**خوښه** (xwáṣa) ښځ.م. (ج. خوښې) ۱) رضا، میل، رغبت؛ ۲) انتخاب، غوره کونه.

**خوښي** (xwaṣí) ښځ.م. ۱) خوښتیا، خوښوالی، خوشالي، انند؛ ۲) انتخاب، رضا، خوښه.

**خوښی** (xuṣay) نر.م. د واده لګښت.

**خوښېدل** (xwaṣedə́l) مص. ل. ۱) خوشالېدل، رضا کېدل؛ ۲) انتخابېدل، غوره کېدل.

**خوښینه** (xwaṣína) ښځ.م. (ج. خوښینې) ښینه، ښکینه، د ماندینې خور، د ښځې خور.

**خوف** (xawf) نر.م. وېره، ډار، بېره، بیم.

**خوفناک** (xawfnák) ص. نر.م.ج. بېروونکی، وېروونکی، ډاروونکی.

**خوګ** (xūg) نر.م. وګ. خنزیر.

**خوګلن** (xūglán) نر.م. په ایرو کې پټې سکروټې.

**خول** (xol) نر.م. ۱) د اوسپنې خولۍ؛ ۲) نلی، پوچک؛ ۳) یو ډول ډنډر لرونکي بوټي دی.

**خول بور** (xūlbū́r) نر.م. سرپوښ، خول پټی.

**خول بول** (xūlbū́l) نر.م. ۱) خوټ پټ، خول بل؛ ۲) میده میده؛ ۳) ستوی ستومانه.

**خول پټی** (xwalpáṭay) نر.م. ۱) وګ. خول بور؛ ۲) ص. نر.م. خاموش، غلی، چوپ.

**خولخوږي** (xūlxū́ẓi) ښځ.م. یو ډول ناروغي ده.

**خولخوږی** (xūlxūẓáy) ص. نر.م. هغه څوک چې په خولخوږي اخته وي.

**خولخونده** (xūlxwánda) ښځ.م. یو ډول مېوه ده.

**خولکی** (xwalákay) نر.م. خلکی، تیله، خاشه.

**خولکۍ** (xūlkə́y) ښځ.م. یو ډول ګیاه ده.

**خولګنډلی** (xūlganḍə́lay) ص. خولپټی، خوله تړلی، خپ و چپ.

**خولګۍ** (xwalgə́y) ښځ.م ۱) وړه خوله، کوچنۍ خوله، خولګوټې؛ ۲) مچو، مچکه.

**خولم** (xwalám) ص. نر.م. ۱) لړلی، ککړ، لژند، لیت پیت؛ ۲) اوار؛ ۳) نښتی، منطبق.

**خولمول** (xwalamawə́l) مص. مت. ۱) لړل، لژندول، ککړول؛ ۲) اوارول، پلنول.

**خولن** (xwalán) ص. نر.م. ۱) خولې، خولې شوی؛ ۲) خولې کوونکی، خولې کېدونکی.

**خولنګ** (xuláng) نر.م. فریاد، ژړا، انګولا.

**خولنګول** (xulangawə́l) مص. مت. په ژړا کول، په فریاد کول، په ماتم، کښېنول.

**خولنۍ** (xwalanə́y) ښځ. م. یو ډول غرنی بوټی دی چې د چنو په اندازه دانې کړي.

**خولواښی** (xwalwā́ṣay) نر.م. خولند، خولبندی، خولوندی، خولوندنی، سنی، هغه نری پړی چې د جوال یا بوجۍ خوله پرې تړي.

**خولول** (xulawə́l) مص. مت. ۱) وهل، ټکول؛ ۲) منډل، پلنول؛ ۳) څملول؛ ٤) مج. غېږ په غېږ کېدل او جنګ کول.

**خولوونی** (xulawū́nay) نر.م. یو ډول سپېره او خړ رنګی بوټی دی.

**خولوېش** (xwalwéš) ا. د پاتوړو (وارثانو) تر منځ د غلې او نورو موسمي پېرو (محصولاتو) وېش.

**خوله**[1] (xwalá) ښځ.م. ۱) د ژوو په سر کې هغه مجوف جوړښت چې ژبه او غاښونه په کې پراته وي؛ ۲) د کڅوړې، بوجۍ خوله؛ ۳) مخکې، مخه؛ ٤) مچه، بوسه؛ ٥) مج. وعده، ژبه؛

۶) خوېله، عـرق؛ ۷) يو ډول واښه؛ ۸) خولۍ، ټوپۍ، د سر خولۍ.

.۶ خوله (۲) (xūla) ښځ.م. هغه طلاقـه شوې ښـځه چې پخوانى مېړه يې بېرته په نكاح كړي.

**خوله بند** (xwalabánd) ص. نر.م. تود و سوړ، او ګير، هغه ناروغي چې له تـودوالي څخه وروسته د سـوړوالي پيدا كېږي.

**خوله پرې كول** (xwalaprekawə́l) مـص.ل. ۱) خبره فيصله كول؛ ۲) خبرې كول.

**خوله ور** (xwalawár) ص. نر.م. ژبور، دښې ژبې خاوند، خبرلوڅ، وياند.

**خولې** (xwále) ښځ.م. د ستني برغـ لى؛ هغـه لرګى چې دستني او بش ترمنځ ايـ... كېـږي.

**خولى** (۱) (xūláy) نر.م. يو ډول سـ... ر ...وټى دى.

**خولى** (۲) (xawláy) نر.م. د غره دلمني ... پينه خاوره.

**خولېدل** (xūledə́l) مص.ل. ۱) وهل كېدل، ټكېدل ۲) پلنېدل؛ ۳) سره رغېدل؛ ٤) مج. غـبـږ په غېږ كېدل.

**خوم** (xūm) نر.م. خم، مټ، هغه مټ چې رنګـرېزان جامې په كې رنګوي.

**خومار** (xumā́r) نر.م. ۱) قمار، جواري؛ ۲) ګـرد، غبار، دوړه؛ ۳) جوش، ګـرمي؛ ٤) ص. نر.م. چټي، بې فايدې، عبث.

**خوماري** (xūmārí) ښځ.م. ۱) خـتـوری، شفتالو؛ ۲) نشه يي. "

**خومرى** (xūmrə́y) ښځ.م. جورى، لوغى، كتـوه، غوالوشي، خاورين لوښي لكه كتوه.

**خومښ** (xūmə́ṣ) نر.م. توده ګردجنه ورځ.

**خون** (xūn) نر.م. ۱) وژنه، قتل؛ ۲) وينه.

**خوناب** (xūnā́b) نـر.م. سـرواني، ډېروبي، زوه، زرويه، هغـه نو چې وينه ورسره يو ځای وي.

**خوناړينه** (xūnāṛína) ښځ.م. داړنه، څيرونه.

**خون بها** (xūnbahā́) ښځ.م. ديت، هغه مالي بدل چې قاتل يې د مقتول وارثانو ته وركوي.

**خونجاړه** (xūnjāṛá) ښځ.م. ۱) زړه لته، ورسـته توته؛ ۲) زاړه او توكر توكر كالي.

**خونچه** (xūnčá) ښځ.م. ۱) خوانچه، هغه پتنوس چې د ناوې يا زوم كره نكـريزې، كـالي او... په كې وړل كېـږي.

**خونخوار** (xūnxwā́r) ص. نر.م ۱) قاتل، خوني ۲) ظالم؛ ۳) وينې څښونكى.

**خوند** (xwand) نر.م. مزه، ذايقه، لذت.

**خوندور** (xwandawár) ص. نر.م. ج. مـزه ناک، مزه لرونكى، مزه دار، مزېدار، خوند لرونكى.

**خوندي** (xwandí) ص.نب. محفوظ، ساتل شوى، ځاى په ځاى شوى، پټ كړى شوى.

**خونديينه** (xwandiyə́na) خونديوالي، خونديتوب.

**خونرېزي** (xūnrezí) ښځ.م. ۱) وينه ضايع كونه، وينه توېدنه؛ ۲) قتل، وژنه، قتلونه.

**خونړى** (xūnaṛáy) ص.نـر.م. ۱) خـوني، قاتل، وژونكى؛ ۲) وينه تويوونكى.

**خونسرد** (xūnsárd) ص.نر.م ۱) دحوصلې خاوند، آرام، سوړ مزاجه؛ ۳) بې پروا، زړه ماتى.

**خونكار** (xūnkā́r) ص.نر.م. خون كوونكى، خوني وژونكى، قاتل.

**خونګټى** (xūngatáy) نر.م. ټانټه، ټمټه، ډنډه، د جوارو ټانټه.

**خونول** (xūnawə́l) مص.مت. ۱) شيندل، نوستل؛ ۲) مج. قربانول، نثارول، جارول.

**خونه** (xū́na) ښځ.م. كوټه، اطاق؛ كور، مېنه.

**خونى** (xū́nay) نر.م ۱) ښندنه؛ ۲) جارونه، نثارونه ۳) هغه سوغات چې تـر واده وروسـته په ناوې

پسې د پلار له کوره لېږل کېږي.

**خوني** (xūní) ص. نر. ښځ. م. ۱) خونړی؛ ۲) قاتل، ادم کش، وینه تویوونکی.

**خونۍ** (xūnáy) ښځ. م. پېټک، مخ ورنی، روی دیدني، د ناوې مخ لوڅې، مخ رونی.

**خوهل** (xūhə́l) مص. ل. کیندل، کندل، کنستل.

**خوی**(۱) (xway) نر. م. ۱) پارو، راشپېل؛ ۲) ښځ. م. د ونو سپېږه د ونو غوړکه، د ونو وخې؛ یو ډول وړه حشره ده چې په ونو کې پیدا کېږي.

**خوی**(۲) (xūy) نر. م. عادت، خصلت، خُلق، اخلاق.

**خوي**(۳) (xwi) نر. م. ۱) منګول، پنجاله، پنجه؛ ۲) مج. کوښښ، زیار، خېږ؛ ۳) منګولې لګول او هلې ځلې کول.

**خوېښ** (xwéṣ) نر. م. و ګ. خېښ.

**خویول** (xūyawə́l) مص. مت. سرول، خورینول، زخم یا دانه شړول.

**خویوونی** (xūyawū́nay) فام. نر. م. شړوونی، خورینوونی، هغه دارو چې زخم شړوي.

**خویېدل** (xūyedə́l) مص. ل. شړېدل، خورینېدل؛ د زخم یا دانې شړېدل.

**خې** (xe) ښځ. م. ۱) د (خ) توری تلفظ؛ ۲) نر. م. ایغ، په ګونډو، په ګونډو ناست، خې کېدنه.

**خۍ** (xəy) ص. ښځ. م. چټل، ناولی ځیز، کخ.

**خیابان** (xyābā́n) نر. م. واټ، د ښار یا باغ په منځ کې لویه او پراخه لاره.

**خیار** (xiyā́r) نر. م. ۱) انتخاب؛ ۲) اختیار، واک.

**خیاره** (xayā́ra) ښځ. م. دوې توتې، دوه ټایه.

**خیاط** (xayā́t) نر. م ۱) درزي، ګنډونکی، د کالیو درېشیو او... ګنډونکی.

**خیال** (xyā́l) نر. م. ۱) فکر، سوچ، تصور، پام؛ ۲) ګمان، وهم؛ ۳) ویاړ، فخر، سامانه.

**خیال پال** (xyālpā́l) ص. نر. م. ۱) انګېرسال، خیال پرست، فکري؛ ۲) د خیال خوښوونکی.

**خیال پلو** (xyālpaláw) نر. م. د چرت، فکر، د سوچ دنیا، په خیال سره دنیا ابادونه.

**خیالجن** (xyāljə́n) ص. نر. م. ۱) و ګ. خیالمن؛ ۲) خیالور، مغرور، د باو او لاپې کوونکی.

**خیالمن** (xyālmán) نر. م. ۱) خیالجن، د فخر خاوند، ویاړمن؛ د سینګار خاوند، ډولي.

**خیالو** (xyālo) ص. نب. ۱) ډولي ښځه، سینګاري ښځه؛ ۲) ګرانه، محبوبه، شهې.

**خیالوتکی** (xyālū́tkay) ص. نر. م. مغرور، ویاړمن، خیالجن.

**خیالور** (xyālawár) نر. م. و ګ. خیالمن.

**خیالولی** (xyālawálay) ص. و ګ. خیالمن.

**خیالي** (xyālí) ص. نب. ۱) تصوري؛ ۲) ویاړ کوونکی؛ ۲) ډولي، سینګاری.

**خیانت** (xyānát) نر. م. دوکه، درغلنه، غدر.

**خیبۍ** (xebáy) ښځ. م. خوېبې، سرپټې ډنډ، یخوبې د اوبو یخولو لپاره ژور ډنډ.

**خیت** (xit) ص. نر. م. ۱) پیت، چیت، چت پت، خیت پیت؛ ۲) خړ، سپېره، په خاورو لړلی.

**خیتکه** (xítka) ښځ. م. کرښه، خط، لیکه.

**خیتلکه** (xitálka) ښځ. م. جدول.

**خیته** (xíta) ښځ. م. لیکه، خط، کرښه، خیتکه.

**خېته** (xéta) ص. نر. م. هغه دېوال چې د لوېدو وېره یې موجوده وي.

**خیټو** (x(i,e)ṭū́) ص. نب. خېټو، ګېډور، خېټور.

**خېټورتوب** (xeṭawartób) نر. م. نسورتوب، ګېډورتوب.

**خېټه** (xéṭa) ښځ. م. نس، ګېډه.

**خېجۍ** (xejə́y) ښځ. م. جر، زابر.

**خیچن** (xičán) ص. نر.م. ج. و ګ. خچن.

**خېڅه** (xeca) ښځ.م. ښځیاکه، ښوڅیاکه، توتکی، توتکرکی، خڅیاکه.

**خید** (xid) نر.م. خود، خسیل، هغه غنم یا اوربشې چې وختي کرل شوي وي.

**خیدک** (xaydák) نر.م. هرکله چې شیدې ورانې شي او بیا ګردې چکې ورڅخه جوړې شي.

**خیر** (xayr) نر.م. ۱) ښېګڼه، نېکي؛ ۲) خیرات.

**خیر** (xir) ص.نر.م. ۱) غوسه ناک؛ ۲) تیار، آماده ۳) شرمنده؛ ٤) سرزوری؛ ٥) مخالف؛ ٦) ځیر.

**خیرات** (xayrā́t) نر.م. صدقه، د خدای په نامه څه ورکول.

**خیرات خور** (xayrātxór) ص.نر.م. هغه څوک چې تل خیراتونه خوري.

**خیراتول** (xayrātawə́l) مص. مت. ۱) صدقه کول، د خدای په نامه څه ورکول.

**خیراتي** (xayrātí) ص. نب. خدایي، نذري، د خیرات، ثوابي، د خدای په چهات.

**خیراتېدل** (xayrātedə́l) مص. ل. صدقه کېدل، قربانېدل، د خدای په نامه یو څه ورکول کېدل.

**خیراندېش** (xayrandéš) ص. نر.م. خیرخواه، خیرغوښتونکی، خواخوږی، نېک نظری.

**خېرجتوب** (xerajtób) نر.م. خجالتتیا، خیرجتیا، خیرځتوب، خیرجوالی.

**خېرجه** (xerajá) ص. نب. خېرڅه، خړ، شرمنده.

**خیرخواه** (xayrxwā́) ص. نب. خواخوږی، نېک نظري، ښکومی، خیراندېش.

**خېرځتوب** (xerajtob) نر.م. شرمنده ګي.

**خېرڅه** (xerajá) ص. نب. شرمنده، خړ، خجل.

**خیرسوی** (xirsáway) ص. هغه جامې چې له ډېر خیرې نه له پاکېدو وتې وي.

**خیرن** (xirán) ص. نر.م. ۱) ناولی، چټل، ګنده؛ ۲) خپه، تور زړه، تور شوی زړه.

**خیرنول** (xiranawə́l) مص.مت. ناولی کول، چټلول، ګنده کول.

**خیرنېدل** (xiranedə́l) مص. ل. ناولی کېدل، چټلېدل، ګنده کېدل.

**خیرو** (xayró) نر.م. ګل خیرو، یو ډول ګل دی.

**خیرول** (xirawə́l) مص. مت. ۱) سوختول، غصه کول؛ ۲) ترتیبول؛ ۳) شرمول، خجالتول.

**خیره** (xíra) ښځ.م؛ ۱) چټلتیا، ناولتوب، ناپاکي؛ ۲) ص. نر.م. تت، خړپړ، د روڼ ضد.

**خیریت** (xayriyát) نر.م. سلامتیا، کراره کراري.

**خیریه** (xayriyá) ص. نب. خیررسانده، مرستندویه.

**خېز** (xez) نر.م. ۱) توپ، دانګ؛ ۲) غوړېدنه، ژر وده کونه؛ ۳) ور. د ورروستاري په ډول راځي.

**خېژول** (xežawə́l) مص. مت. ۱) خېزول، پورته کول، لوړول؛ ۲) د تېټ ځای څخه جګ ځای ته لېږدول، ارزښت جګول، بیه جګول.

**خیږ** (xiẓ) نر.م. خور، پترې، د زخم پېروی.

**خیږن** (xiẓán) نر.م. خیږلرونکی، پترې لرونکی.

**خیږی** (xiẓáy) نر.م. د داش توره ایره، د داش ګرمه ایره، د بټۍ توده ایره.

**خیسوس** (xaysū́s) نر.م. خره مرغۍ ده.

**خېشاوه** (xešā́wa) ښځ.م. للون، ګوړ، پوچی، له فصل څخه د هرزه بوټو ایسته کول.

**خیښت** (xišt) ص. نر.م. (ج. خیښته) خوښت، لوند، خیښت پیښت، خوښت.

**خیښتوالی** (xištwā́lay) نر.م. خوښتوالی، لوند والی، خیښت پښت والی.

**خیښتول** (xištawə́l) مص. مت. خوښتول، لندول، لمدول، خوښتول

**خیښته** (xiṣ̌tá) ص. ښځ. م. ۱) د خیښت ښځینه شکل؛ ۲) ښځ. م. حلزون، کپسی، غواګی.
**خیښتېدل** (xiṣ̌tedə́l) مص. ل. خوشتېدل، لندېدل لمدېدل، خوېښتېدل.
**خېښوم** (xayṣ̌úm) نـر. م. تېنکی، د پـزې هغه سوری چې د دواړو سترګو ترمنځ وي.
**خېښ** (xeṣ) ص. نر. م (ج. خېښان) خوېښ، خپل، رشته دار.
**خېښه** (xéṣa) ښځ. م. ۱) هغـه ښځـه چـې د زوم له کوره د واده په شپه باندې د واده له کالو سره ځي او واده په ورځ لـه ناوې سـره یو ځـای راځي؛ ۲) ص. ښځ. م. د خېښ مؤنث شکل.
**خېښي** (xeṣí) ښځ. م. خپلوي، خپلولي، خوېښي.
**خیګ** (xig) نر. م. شناز، هغه لـوی مشـک چې له هوا څخه ډکېږي او په لویو سیندونو کـې خلک د سیند بلې خواته وربانديې پورې وځي.
**خیګړی** (xigaṛáy) نر. م. کوچنی مشک.
**خېل** (xel) نر. م. ۱) اولاده، توکم. ذات، تپه، پښه، هډوکی، ټبر؛ ۲) قسم، ډول، رقم.
**خېلخانه** (xelxā́na) ښځ. م. ټبر، کورنی، خاندان.
**خېله** (xelá) ص. نب. ۱) ایله، ایله ګـرد، پوچ، بې مانا؛ ۲) ټوکي، ټوکمار، مسخره چي.
**خېله خند** (xelaxánd) ص. نـر. م. ۱) ټـوکي، ټوکمار، مسخره؛ ۲) پوچ، بې مانا، چټي.
**خیم** (xim) ص. نر. م. ج. ۱) سـوړ شـوی، کنګل، شوی، یخ شوی، ښېم؛ ۲) ګڼ.
**خېمه** (xemá) ښځ. م. وړوکی تامبو، کوچنی تمبو.
**خېنټی** (xenṭə́y) ښـځ. م. ۱) وړوکـی کپ؛ ۲) په ونه باندې داسې پورته کـېدل چې سینه په تنه باندې نښتې وي؛ ۳) داوربشـو فصل چې وړې یې لا نه وي ایستلي.
**خینجاړي** (xinjāṛí) ص. نـب. ۱) خـراب، بې ښې، چټي؛ ۲) ضایع، خړموچ، خړمیچ.
**خینګ** (xing) ص. نر. م. خنګ، خجل، شرمنده.
**خینګتیا** (xingtyā) ښځ. م. شرم، خجالت.
**خینګول** (xingawə́l) مص. مت. شرمول، خجلول، خنګول، شرمنده کول.
**خیه** (xya) اد. ښه، هو، اوکې، ښیه، بلې، سمه.



**د**[1] (dāl) نر.م. د پښتو الفبې ۱٤ توری چې ابجدي ارزښت یې ٤ دی.

**د**[2] (dāl) اد. داضافت توری دی، لکه دګلو ګېډۍ.

**دا** (dā) ض. ۱) نږدې اشاري ضمیر دی؛ ۲) نر.م. (مو.) د ها، ده، د، په ختیزې علمي موسیقي کې داووه ګونو سرو په لړ کې د شپږم سُر نوم.

**داب** (dāb) نر.م. دڅرخ میله، دڅرخ تیر، د ارټ تیر.

**داباشي** (dābāšī́) ص.نر.م. د لسو کسو کاریګرو مشر.

**داپ** (dāp) نر.م. د تنستې د اوبدلو د دولا (کښېت، پر، کت) ومنځ تهوایي.

**داپه دا** (dāpadā́) اد. له دې امله، په دې سبب.

**داتکی** (dātkáy) ښځ.م. د یوه بوټي نوم دی چې په رنګولو کې کار ورڅخه اخلي.

**داتوره** (dātūrá) ښځ.م. دانتوره، دالتوره، یو ډول نبات دی.

**داج** (dāj) نر.م. جهیز، جېز، د ناوې د واده کالي.

**داڅېر** (dā́cer) نر.م. دارنګه، دا راز، دا ډول.

**داخلول** (dāxilawə́l) ۱) دننه کول، ننه ایستل؛ ۲) شاملول؛ ۳) شریکول، ګډول، په کې نیول.

**داخله** (dāxilá) ص. ښځ.م ۱) شمولیت، د داخلېدو، د ننوتو؛ ۲) کورنی، وطني، دهېواد دننه.

**داخلي** (dāxilī́) ص.نر.م. هېوادنی، کورنی، د ملک.

**داخلېدل** (dāxiledə́l) مص.ل. ۱) ننوتل، په کې کېدل؛ ۲) شاملېدل؛ ۳) ګډېدل، شریکېدل.

**داد** (dād) نر.م. ۱) کریږه، کریغه، ناره، فریاد؛ ۲) ورکړه، بښنه، بخشش؛ ۳) ص.نر.م. عدل نیاو، انصاف، لور.

**دادا** (dādā) نر.م. پلار، د پلار لقب.

**دادرده** (dādurdá) ص. نب. دادردا، ډېر سخي.

**دادره** (dādrá) ښځ.م. ۱) په ختیزې موسیقۍ کې یو ډول وزم دی؛ ۲) د یوه پېژندوي تال نوم دی.

**دادري** (dādrí) ښځ.م. ژبې لوېدل، تالـولوېدل د کوچنې د ستونې لوېدو ناروغي.

**دادښت** (dādásṭ) ا. داده کېدنه، قايلېده، اعتراف.

**دادک** (dādák) نر.م. د پلار لقب، د ابا لقب، د دادا مصغر چې د مينې له امله پلار ته ويل کېږي.

**دادکه** (lādáka) ښځ.م. ۱) د مـور لـقب، د خـور لقب؛ ۲) په ندايي حالت د دادا مصغر شکل.

**دادمل** (dādmál) ص. نياومن، نياووال، دادگـر، عادل.

**دادوکار** (dādukā́r) نر.م. خمزوري، شپيانګه، يو ډول بوټی دی چې شيدې ورباندې پوڅېه کوي.

**داده** (dādá) ص. نر.م. اقرار کوونکی، منونکی.

**دار** (dār) نر.م. ۱) غرغره، زينده، پانسي، سولۍ؛ ۲) ځای، کور، چاپېريال؛ ۳) مج. تريخ، تنگ؛ ٤) مج. دونې ښاخ.

**دارالانشاء** (dārulinšā́) ښځ.م. د ليکلو ځای، د انشاء ځای، د ليک يا مکتوب د کښو ځای.

**دارالتاديب** (dārultādíb) د ادب ښوولو ځای، د تعليم ځای، روزنځی.

**دارالحکومه** (dārulhukūmá) ښځ.م. د حاکم د اوسېدو ځای، د حکومت مرکز.

**دارالخلافه** (dārulxilāfá) ښځ. م. دخلافت ځای، د خليفه د کښېناستو ځای، دخلافت مرکز.

**دارالسلطنه** (dārulsaltaná) نر.م. پلازمېنه، پايتخت، د پاچا د استوگنې ځای.

**دارالفنون** (dārulfunū́n) نـر.م. ۱) د ډول ډول هنرونو د زده کړې ځای؛ ۲) پوهنتون.

**دارالمجانين** (dārulmajānín) نر.م. لېونتون، دلېونو ځای، د لېونيانو د ساتنې ځای.

**دارالمساکين** (dārulmasākín) نر.م. مـرستون، د بېوزلو د اوسېدو ځای.

**دارايي** (dārāyí) ښځ.م. شـته، شـتمني، پانګه، مال او دولت.

**دارباز** (dārbā́z) نر.م. ډالباز، دالبازي، د اکروباټ لوبغاړی، د آکروباتيکي لوبې لوبغاړی.

**دارچيني** (dārčiní) ښځ.م. و گ. دالچيني.

**دارکش** (dārkáš) نر.م. پانسي کـوونکی، په دار خېژوونکی، زندۍ کوونکی.

**دارکی** (darkáy) نر.م. دارگی، نهال، نيالگی.

**دارو** (dārū́) نر.م. و گ. درمل.

**دارو درمل** (dārūdarmál) نر.م. درملنه، علاج کـول، دوادارو، تداوي.

**داروغه** (dārūğá) نر.م. ۱) ناظر، د غلې ناظـر، د غلې څـارونکی؛ ۲) کـوتوال، د زندان آمر؛ ۳) ولايتي پلټونکی، تفتيش؛ ٤) کښې، کروی ٥) حاکم، حکمران؛ ٦) د گزمې مشر؛ ۷) داداري لوی منشي.

**داروکار** (dārūkā́r) نر.م. يو ډول غرنی بوټی دی چې ډېر خطرناک زهر لري.

**داروگر** (dārūgár) نر.م. ۱) معـالـج، درمـلگر، طبيب؛ ۲) باروت جوړوونکی.

**دارومدار** (dārumadā́r) نر.م. ۱) نرمي کـول، مهرباني کول؛ ۲) مجلس؛ ۳) ټيټ و پاس.

**داره** (dā́ra) ښځ.م. دارۍ، تيـرکه، پشکـه، دزور او فشار په واسطه د مايعاتو غورځېدنه.

**داري** (dārí) ور. د ځينو کليمو په پای کې راځي او اسمي کليمې ځنې جوړوي لکه: وفاداري.

**داريال** (dāryā́l) نر.م.و گ. دريه.

**دارين** (dāráyn) نر.ج. دنيا او آخرت.

**داړک** (dāṛák) ص. نر.م. و گ. داړو.

**داړل** (dāṛál) مص. مت. چيچل، په غـاښو نيول، په غاښونو ژوبلول.

دارلی (dāṛə́lay) مف. نر.م. چیچلی، خوړلی، په غاښونو ژوبل کړی، خوله وراچولی.

داړنه (dāṛə́na) ښځ.م. چیچنه، خوړنه، خوله اچونه، د مېږي او نورو ځیرونکو حیواناتو چک لګونه.

داړنی (dāṛanáy) نر.م. داړو، داړک، هغه څوک چې غاښونه یې اوږده وي.

داړو (dāṛú) نر.م. ژګ. داړنی.

داړور (dāṛawár) ص. نر.م. غاښور، داړو.

داړونکی (dāṛúnkay) فا. نر.م. ۱) چیچونکی ۲) ځیرونکی، خوله اچوونکی، داړونی.

داړه (dā́ṛa) ښځ.م. ۱) چاپه، چپاو، ډاکه، غدی؛ ۲) د غلو ډله، د غلا لپاره د غلو ډله ییز هجوم؛ ۳) مج. د بدو عمل؛ ٤) مخني اوږده غاښ، تېره غاښ، نېښ.

داړه مار (dāṛamā́r) ص. نر.م. (ج. داړه ماران) داړه اچوونکی، ډاکو؛ ۲) مج. بدو.

داستان (dāstā́n) نر.م. مواسه، نکل، کیسه، قصه، افسانه، رومان.

داستاني (dāstāní) ص. کیسه یي، کیسه ییز.

داسې (dā́se) ق. دا ډول، دارنګه، دغسې.

داش (dā́ṣ̌) نر.م. ۱) داښ، بټۍ، پجن، پجه، داښت؛ ۲) وګ. ډش.

داشت (dā́št) نر.م. دوام، پاینښت، داښت.

داښي (dā́ṣ̌i) ص. نر.م. داشي، د داښ، د داښت.

داعیه (dāʿiyá) ښځ.م. ۱) بلنه، علت، سبب، عامل؛ ۲) محرک؛ ۳) حقوقي غوښتنه.

داغ (dā́ğ) نر.م. ۱) لکه، خاپ، تاپ؛ ۲) مج. تور، تومت، الزام.

داغسر (dāğsár) ص. نر.م. تور غاړی، چنچن.

داغل (dāğə́l) مص. مت. ۱) داغول، ایشول، سره کول؛ ۲) داغول، داغ لګول، خاپ لګول، تپل.

داغمه (dāğmá) ص. نب. ۱) زوړ، مستعمل، زوړ شوی، مړلی؛ ۲) داغي؛ ۳) ښځ.م. د داغ نښه.

داغنه (dāğə́na) ښځ.م. داغ ورکول، داغ لګونه.

داغوونکی (dāğawúnkay) فا. نر.م. داغ ورکوونکی، څوک چې څارویو ته داغ ورکوي.

داغي (dāğí) ص. نر.م. ۱) داغ لرونکی، لکه لرونکی؛ ۲) تومتي، تهمتي، تورن، بدنامه.

داغېدل (dāğedə́l) مص.ل. ۱) لکه کېدل، داغ پیدا کېدل؛ ۲) د ځینو دردونو له امله د انسان او څارویو په غړو باندې د کوم سره کړې شي په واسطه داغ ایښودل.

دافع (dāfíʿ) ص. نب. دفع کوونکی، مخه نیوونکی، منع کوونکی، ګرځوونکی.

دال (dāl) نر.م. ۱) د «د» توري تلفظ؛ ۲) پاتې، پېتي؛ ۳) دلالت کوونکي؛ ٤) دلیل، سبب.

دالان (dālā́n) نر.م. ډیوډی، تونکړی، برمک.

دالتونیزم (dāltūnízam) نر.م. یو ډول ناروغي ده چې سترګې سور رنګ نه شي پېژندلای.

دالچیني (dālčiní) ښځ.م. ج. دارچیني، خوږ لرګی، د یوې ونې د ښاخونو خوشبویه خوږ دی.

دام (dām) نر.م. ۱) جال، لومه، غېښکی؛ ۲) مج. مکر، چل، تګې؛ ۳) د تنستې د منځ تارونه؛ ٤) اهلي ژوي ٥) پیسه، د پیسې ۲٤ مه برخه.

دامان (dāmā́n) نر.م. غولۍ، دالان، دښت، سارا، بیابان.

دامتوره (dāmtūrá) ښځ.م. وګ. داتوره.

دامیار (dāmyā́r) ص. نر.م. ۱) ارت، پراخ، آزاد؛ ۲) اوږد؛ ۳) ډېر وخت، ډېره موده.

دانا (dā́nā) ص. نر. ښځ.م. عاقل، پوه، هوښیار.

دانګ (dāng) نر.م. ۱) توپ، خېز، ګوپ، کوپ؛ ۲) شپږمه برخه؛ ۳) ګرندی، چټک.

**:انگل** (dāngál) مص. ل. توپ وهل، خېز اچول، گوپ کول، دنگل.

**نگوړی** (dānguṛay) نر. م. بادرنگ، ترېوړی.

**نگول** (dāngawә́l) مص. مت. ۱) پورته پورته غورځول؛ ۲) اچول، دنگول، غورځول.

**انگی** (dāngáy) نر. م. ۱) بڅ، کړایی؛ ۲) یو ډول نبات دی چې په رنگ ورکولو کې تري کار اخلي؛ ۳) یرغل، یرید؛ ٤) څغاسته، منډه.

**انگې دانگې** (dā́ngedā́nge) ص. نر. م. ربنکی ربنکی، ترانگې ترانگې.

**دانگېدل** (dāngedә́l) مص. ل ۱) دنگل، دانگل، توپ وهل، خېز اچول؛ ۲) ځای پر ځای خېز کې یا توپونه وهل.

**دانه** (dāná) ښځ. م. ۱) ننکی، نینک؛ ۲) دهنه، ورخ؛ ۳) دجنس لپاره له عدد سره استعمالېږي.

**دانه خوره** (dānaxóra) ښځ. م ۱) روږده، روږدې، اموخته؛ ۲) مج. هغه نجلۍ چې د کوم هلک سره پټه مینه ولري.

**دانه دار** (dānadár) ص. نر. م. ج. ځیږ، لوار، دانې دانې، غوټې غوټې.

**دانه دانه** (dānádāná) ص. نر. م. ۱) تیت، تیت و پرک، خواره واره؛ ۲) ذره ذره، ریچې ریچې، دانې دانې.

**:انیوب** (dányū́b) نر. م. و گ. ډنیوب.

**:انو** (dā́nū) نر. م. پوړنی، تیکری، ټکری، پړونی.

**دانه** (dāná) ښځ. م. دل، ورغستلي، گوري، گور.

**دانۍ** (dānáy) ښځ. م. پنۍ، یو ډول ښخینه پسول.

**داو** (dāw) نر. م. ۱) ځار، قربان، صدقه؛ ۲) بولی، دو، بیه جگول.

**داوتي گل** (dāwutígwә́l) نر. م. شستی گل، یو ډول گل دی چې ډول ډول رنگونه لري.

**داوطلب** (dāwtaláb) ص. نر. م. ۱) رضاکار، په خپله خوښه چمتو، کاندید؛ ۲) زیاتوونکی.

**داوطلبي** (dāwtalabí) ښځ. م. ۱) رضاکاري، کاندیدېدنه، په خپله خوښه؛ ۲) بیه جگونه.

**داوڼ** (dāwáṇ) نر. م. پوړنی، زړوکی، ټکری.

**داوڼی** (dāwṇáy) نر. م. تیرک، د ژرندې تیر.

**داوه دنگله** (dāwadangála) ښځ. م. دعوه دنگله، مناقشه، جگړه، شخړه، لانجه.

**داه** (dāh) ص. نب. وینځه، مینځه، دایه.

**داهیانه** (dāhyāná) ق. په پوهه سره، په خبرۍ سره، په هوښیارۍ.

**دای** (dāy) ښځ. م. ۱) د دېوال پخسه، د دېوال موره؛ ۲) عد. و گ. ډای.

**دایر** (dāyár) ص. نر. م. ج. جاري، پیل، پرانستی.

**دایرة المعارف** (dāyratulmaʿārif) نر. م. انسایکلوپېډیا؛ هغه کتاب چې ټول انساني معارف پکې راټول او تشریح شوي وي.

**دایروي** (dāyrawí) ص. نب. گردی، گرد، گړدی، حلقوي، د دایرې په څېر.

**دایره** (dāyrá) ښځ. م. ۱) هن. دائره، هغه گردې کرښې چې له مرکز څخه مساوي فاصله ولري؛ ۲) حق. د ځو شعبو اجتماع، دفتر، اداره؛ ۳) مو. و گ. دریه.

**دایک** (dāyә́k) نر. م. رونکی، د اوسپنې پترۍ دی چې پر کالو او خولۍ ټکوهل کېږي.

**دایم** (dāyә́m) ص. نر. م. ج. تل، همېشه، هر وخت، هر کله، همېشنی، تل تر تله، مدام.

**دایي** (dāyí) ښځ. م ۱) رضاعي مور، د شیدو مور؛ ۲) دایه، قابله.

**دایېرول** (dāyirawә́l) مص. مت. دایرول، شروع کول، پیلول، جاري کول، پرانیستل، جوړول.

**دب** (dab) نر.م. دب، تکبر، غرور، سامانه، لويي.
**دباب** (dabā́b) نر.م. ۱) بسرم، پسرتم؛ ۲) دپکه، پتکه، دبابې، برګېدل، سترګې باندې کښېل.
**دبابو** (dabābū́) ص. نر.م. دباب کوونکی، ګوابن کوونکی.
**دباغ** (dabā́ǧ) ص. نر.م. څرمن پخوونکی، څرمن رنګوونکی.
**دباغت** (dabāǧát) نر.م. څرمن رنګونه، څرمن پخونه، دباغي.
**دباندې** (dabā́nde) ق. بهر، بېرون، ورچنې.
**دباندېنی** (dabāndenáy) ص. نر.م. بهرنی، خارجي، په بهر پورې تړلی.
**دباو** (dabā́w) نر.م. ۱) و.ګ. دباب؛ ۲) مج. زور، طاقت، اختيار.
**دبدبه** (dabdabá) ښځ.م. پرتم، شان اوشوکت، برم.
**دبدوب** (dabdū́b) نر.م. ګورونه، تهديد، توبيخ.
**دبړ** (dabáṛ) ص. نر.م. څورب، چاغ، مزی، قوي.
**دبز** (dabə́z) ص.نر.م. دبز، شلنډ، چاغ، مزی.
**دبزنګ** (dabozáng) نر.م. خنډ، زخه، منډو.
**دبکه** (dabká) ښځ.م. ګوابن، دب، پتکه، دپکه.
**دبل** (dabə́l) مص. مت. ډبول، دربل، پلنول.
**دبله** (dablá) ښځ.م ۱) دوېړی، ډبله، دبلي، دوکړی ۲) د پښانو د کالو او سامان ايږدلو سوندخ.
**دبلی** (dabláy) نر.م. ۱) قطی، ډبلی؛ ۲) د لوخې څونډی، د لوخې وږی يا ګل.
**دبنه** (dabána) ښځ.م. ډبونه، تخته کونګ، پلنونه.
**دبه** (dabá) ښځ.م. له کدو يا اومې څرمنې د پتک په څېر يو لوښی چې تېل په کې ساتي.
**دبی** (dabáy) نر.م. ۱) څوپاړی، سوتی، د کالو پرېمنځلو اوږد لرګی؛ ۲) بې فايدې، بې ثمره، بې ښې، بې ګټې.

**دبی** (dabáy) ص. ښځ.م. خامه مېوه، هغه مېوه چې په پاڼو يا بوسو کې پخه کړی شي.
**دبېدر** (dubedár) نر.م. يو ښکاري مرغه دی.
**دبی لله** (dabaylalá) ښځ.م. درې کونجه څمکه، مثلث ډوله څمکه.
**دپ** (dap) ص. نر.م. بند، ايسار، ولاړ، بې جريانه، هغه بندېز چې له غوړونو يا هوا سره اړه لري.
**دپاره** (dapā́ra) اد. لپاره.
**دپاسه** (dapā́sa) ق. ۱) پرې د پاسه، باندې، علاوه پر هغه، سربېره؛ ۲) له پاسه، له بره.
**دپتيا** (daptyā́) ښځ.م. بندوالی، تربتېدنه.
**دپکه** (dapká) ښځ.م. ګوابن، دباو، لافه شافه.
**دپه هوا** (dápahawā) ښځ.م. بنده هوا، باد نه چلېدنه، دوپ.
**دتکارل** (datkarə́l) مص.مت. لمسول، پاڅول، اوستول، پارول، آستول، تحريکول.
**د تيږې ګل** (dətízegwál) نر.م. د تيږې پتړی، د تيږې چارګلی.
**د تي ورور** (dətíwror) نر.م. دايي ورور، رضاعي ورور.
**د ټاپي شپه** (daṭāpišpá) ښځ.م. د ناروغ سخته شپه، د ناروغ د ناروغی خطرناکه شپه.
**د ټاټ خاوند** (daṭāṭxāwánd) (اضافي مرکب) لوی نظری، د شان، پرتم يا دبدبې خاوند.
**دچار** (dučā́r) ص.نر.م. اخته، مبتلا، ککړ.
**دچه** (dačá) ښځ.م. ۱) د پالېز او ترکاری لښتی؛ ۲) ص.ښځ.م. ډچه، شان و شوکت، دبدبه.
**د چيغې مير** (dačiǧemír) نر.م. دچيغې پر وخت د ولسي لښکرو لارښوونکی.
**دځوزوګوړی** (daǰózogoṛay) نر.ج. ترنجبين، فلوس، چمبرخيال، يو اغزن بوټی دی.

دښلمي (dacélmí) ق. ۱) د ښرمي، تېوله سره، له یوه سره؛ ۲) ص. د قومه، د کورنۍ.
دخالت (daxālát) نـر.م. لاسوهـنه، مـداخـلـه، ګډېدنه، د چا په کار کې لاس وهنه.
دخانیات (duxānyāt) نر.ج. تـوتون، یـو ډول نیکوټین لرونکی بوټی دی.
دخل (dáxəl) نـر.م. ۱) ګـټه، عـایـد؛ ۲) اړیکی، ارتباط؛ ۳) سیف؛ د پیسو د ساتلو سوندخ.
دخمه (daxmá) ښځ.م. ۱) کـونج، د پټېدو ځای؛ ۲) قبر، مړیستون، ادیره.
دخول (duxū́l) نر.م. ننوتل، داخلېدل.
دخیل (daxíl) ص. نر.م. ۱) لاس لرونکی، داخل، داخل شوی، شامل، ورګډ؛ ۲) برخـه لـرونکی، ونډه لرونکی، برخه اخیستونکی؛ ۳) عـر. هغه متحـرک توری چې د تاسیس د الف او روي تر منځ وي لکه «و» د باور په کلیمه کې.
دد (dad) نر.م. ځناور، حیوان، ځیرونکی ځناور.
ددوری (dadū́ray) نر.م. زوړ او خوار سپی.
ددوی (dadū́y) ض. اضافي منفصل ضمیر دی چې د نژدې مذکر او مونث دواړو لپاره راځي.
دده (dadá) ض. اضـافي منفصل ضمـیر دی چې د نژدې مذکر لپاره استعمالېږي.
ددې (dadé) ض. اضـافي منفصل ضمیـر دی چې د نژدې مؤنث او مذکر لپاره استعمالېږي.
در[1] (dar) ض. ۱) د مخاطب سمتي ضمیـر دی لکه دربه شم؛ ۲) نر.م. ور. دروازه، دره، تمبه.
در[2] (dur) نر.م. مرغله، مرغلره، مروارید.
درازه (drā́za) ښځ.م. ۱) لوېـږنده، درزنده، تنکی ځای؛ د نوي پیدا شوي ماشوم په سر کې دځنکې او تندې په منځ کې هغه ځای چې هډوکی یې ډېر نرم وي؛ ۲) زلزله، رېږدله.

دراستول (darastawə́l) مص.مت.و.ګ. استول.
دراک (darā́k) ص.نر.م. درک کوونکی، ځیرک، هوښیار، تېزفهمه، تېز هوښه.
دراندی (darānda̋y) نـر.م. د پسـونو یـو ډول ناروغي ده.
دراوڼ (drāwáṇ) نر.م. پوړنی، زړوکی، ټیکری.
دراوی (drāwáy) نر.م. نښه، نښانه، ځای.
درایي (darāyí) ښځ.م. قناوېز، ورېښمین ټوکر.
درب (drab) نر.م ۱) یو ډول ناروغي ده؛ ۳) دربله، یو ډول وابښه دي؛ ٤) شان و شوکت، نوم، آوازه؛ ۵) یو ډول بوټی دی.
دربار (darbā́r) نر.م. شاهي ماڼۍ، سلطنتي قصر.
درباري (darbā́rí) ښځ.م. ۱) د دربار، دربار ته منسوب؛ ۲) مو. دختیزې کلاسیکي موسیقۍ یو راګ دی چې پخوا یې کانړه بلله.
دربجن (drabján) نر.م. دوپیا، باسي، خوسا.
دربچه (darbačá) ښځ.م. دریڅه، وړه کړکۍ.
درب دربانی (drabdrabā́nay) نـر.م. الاداد، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.
درب دروب (drabdrū́b) نر.م. ډز و ډوز، خرپ و خروپ، کرپ کروپ.
دربړ (drabáṛ) نر.م. ۱) چاغ، مزی، غوټ، ځورب؛ ۲) هغه څوک چې چست او تېز تللی نه شي.
دربل[1] (drabə́l) مص. مت ۱) تخته کول، کېمندل ۲) په پښو یو شی تخته کول.
دربل[2] (durbál) نـر.م. ښکېـل، د ځاروي مخنۍ او وروستنۍ پښه په پړي سره تړنه.
دربلول (durbalwə́l) مص.مـت. ښـکـېلـول، د ځارویو پښې سره تړل.
دربله[1] (drablá) ښـځ.م. ۱) پلـنه غـتـه تیـږه؛ د ځارویو د پښو لاندې کلکه او چمبر شوې سره؛

۲) سخت شی، کلکې شوې خیرې؛ ۳) بدبویه؛ ٤) مج. غټه او بې ډوله ډوډۍ.

**دربله**[۲] (d(u,a)rbılá) ښځ.م. توره تیاره، تورتم.

**دربلی**[۱] (durbalay) نر.م. زولانه، بېړی، ځولانه د پښو کړی.

**دربلی**[۲] (drabə́lay) ص. نر.م. تخته شوی، کېمنډل شوی، سخت او کلک شوی.

**دربلۍ** (darbaláy) ښځ.م. ۱) درې پښیزه چوکۍ؛ ۲) د پیو او شلومبو د غرکې د ځوړندېدو درې پښیزه پایه؛ ۳) درې پښیزه تال؛ ٤) خوشالي، خوښي، د خوشالۍ ترېکې.

**دربلېدل**[۱] (darbaledə́l) مص.ل. ۱) ښکېلېدل، جړېدل، بندېدل؛ ۲) په بده اخته کېدل، غرقېدل.

**دربلېدل**[۲] (durbaledə́l) مص.ل. تړل کېدل، څاروي په دوو پښو تړل کېدل.

**دربند** (darbánd) ښځ.م. ۱) د غرو په منځ کې تنګه لاره؛ ۲) بند؛ ۳) تاخچه، طاقچه.

**دربنه** (drabə́na) ښځ.م. تخته کول، کېمنډنه.

**دربنۍ** (drabanə́y) ښځ.م. خامه ځمکه، کاواکه ځمکه، هغه ځمکه چې پرې د ګرځېدو پر مهال دربېږي.

**درب ودروب** (drabodrū́b) نر.م. ۱) زوررونه، بېرول؛ ۲) د وهلو او ټکولو آواز.

**دربول** (drabawə́l) مص.مت. ۱) پښې وهل؛ ۲) وهل، ډبول؛ ۳) ځنل؛ ٤) ډول وهل.

**دربولل** (darbolə́l) مص.مت. دربلل، درغوښتل، ځانته دربلل، دعوتول.

**دربولی** (drabawə́lay) مف.نر.م. وهلی، وهل شوی، ډبولی.

**دربونکی** (drabū́nkay) فا.نر.م. تخته کوونکی، منډونکی، ټکوونکی، کېمنډونکی.

**دربوونکی** (drabawū́nkay) فا.نر.م. ۱) ډول وهونکی؛ ۲) وهونکی؛ ۳) تخته کوونکی.

**دربه** (drába) ښځ.م. ۱) تندر، تکه؛ ۲) توره تیاره، توره تروږمۍ؛ ۳) شور، ځوږ؛ ٤) د اتڼ یو ډول.

**دربهار** (drabahā́r) نر.ج. دربې، دربا، مسلسل آواز، پرله پسې غږ.

**دربې** (drabé) ښځ.ج. غورې، لاپې، باتې، غورتې.

**دربې** (drábedrū́be) ښځ.ج. و ګ.: دربې.

**دربېدل** (drabedə́l) مص.ل. ۱) ډبېدل، دبېدل، درزېدل؛ ۲) مج. په قهر کېدل؛ ۳) زړه رپېدل.

**دربېله** (darbelá) ښځ.م. توره تیاره، تورتم.

**درپری** (drapráy) نر.م. ګرمکې، ورې دانې چې د انسان په بدن راخېژي.

**درپیه** (darpayá) ښځ.م. زینه، اندرپایه، پته.

**درت** (dorút) نر.م. په ختیزې کلاسیکې موسیقۍ کې د تال یو معین سرعت دی چې د بلمت او مد وروسته وي.

**درته** (dárta) ق. ورله، د مخاطب لپاره د قید په ډول استعمالېږي او «ستا لپاره» یا «تا ته» مانا ورکوي.

**درج**[۱] (durj) نر.م. دبلی، قوطی، هغه سوندخچه چې جواهر او ګانه په کې ایښودل کېږي.

**درج**[۲] (darj) نر.م. لیکل، داخلول، ځایول، ثبتول.

**درجن** (darján) نر.م. و ګ. درځن.

**درجول** (darjawə́l) مص.مت. ثبتول، داخلول، ځایول، نیول، نغښتل، پېچل.

**درجه** (darajá) ښځ.م. ۱) پوړ، مرتبه، رتبه، مقام؛ ۲) اندازه؛ د اندازې د ښکاره کولو هر هغه څه چې اعداد یا کرښې ولري.

**درجه بندي** (darajabandí) ښځ.م. د درجې ټاکنه، د انداز ټاکنه، د رتبې ټاکنه.

درجېدل (darjedә́l) مص.ل. ثبتېدل، داخلېدل، ځایېدل، نیول کېدل.

درچل[۱] (dračә́l) مص.ل. تړل، پرنجېدل، ترنجېدل.

درچل[۲] (darčál) ص.نر.م. پرله پسې، جاري، روان، چالان.

درچلی (dračálay) نر.م. پرنجېدلی، ترنجېدلی.

درچنه (dračána) ښځ.م. پرنجې، تورۍ، انګې، ترچنه، پرچي، انتوسې.

درچول (dračawә́l) مص.مت. ترنجول، پرنزول.

درځن (darǰán) ښځ.م. درځنه، درجن، کوړۍ، پچه، له یوه جنس څخه معمولاً دولس او کله شپږ داني.

درڅه (durcá) ښځ.م. دروڅه، مورۍ، کولک، د کوټې په چت کې د رڼا دراتلو او لوګي وتلو لار.

درد[۱] (dard) نر.م. ۱) دړد، خوږ، رنځ، ناروغي؛ ۲) قهر، غوسه؛ ۳) څور، کړاو، مصیبت.

درد[۲] (durd) نر.م. ختېړل، کونوبی، د مایعاتو رسوب.

دردک (durdák) ص.نر.م. ورانې، تخه، مستر، تخې تخي، ورانې شوې مستې او شیدې.

دردمن[۱] (dardmán) ص.نر.م. خوږ شوی، خوږمن، دردېدلی، درد وررسېدلی، دردناک.

دردمن[۲] (dardamán) ص.نر.م.ج. وشکتې، عصبي، له قهره ډک، خوشک.

دردول (dardawә́l) مص.مت. ۱) خوږول، په درد اخته کول؛ ۲) څورول؛ ۳) په غوسه کول.

دردېدل (dardedә́l) مص.ل. ۱) په درد اخته کېدل؛ ۲) څورېدل؛ ۳) په غوسه کېدل.

درړ (draṛ) نر.م. یو ډول ګانه ده.

درز[۱] (darz) نر.م. ۱) چاود، چاک، سپړی، وت، سوری؛ ۲) مج. اختلاف، ګنډل.

درز[۲] (draz) نر.م. ۱) د ټوپک، ډز، د درانده شي د غورځېدو اواز؛ ۲) بول، شهرت، برم، پرنم.

درزغن (drazǧán) ښځ.م. و ګ. درغن.

درزنده (drә́zanda) ښځ.م. ۱) لېونده، لېوېنده، درازه؛ د کوچني د سر نرمه برخه؛ ۲) پنګه، پنګی، د غره په سرهوار ځای.

درزنی (drazanáy) نر.م. پلن او هوار میدان.

درزول (drazawә́l) مص.مت. ډزول، وهل او ټکول، ډبول، ګرزول.

درزهار (drazahā́r) نر.م. درزی، درزا، درز و دروز؛ د ټوپک یا توپ ټکې، تالندې پرله پسې اوازونه او غږونه.

درزي (darzí) نر.م. خیاط، کالي ګنډونکی.

درزېدل (drazedә́l) مص.ل. ۱) ډزېدل، وهل کېدل؛ ۲) ګرزېدل، د فشار له امله خوځېدل.

درس (dars) نر.م ۱) سبق، لوست؛ ۲) مج. عبرت، پند، پانیات.

درست[۱] (drast) ص.نر.م.ج. تول، پوره، واړه.

درست[۲] (drust) ص.نر.م. سم، برابر، صحیح.

درستوالی[۱] (drastwā́lay) نر.م. پوره والی.

درستوالی[۲] (drustwā́lay) نر.م. سموالی، برابروالی، صحیح والی، جوړوالی.

درستول[۱] (drastawә́l) مص.مت. پوره کول، تمامول، سرته رسول، بشپړول.

درستول[۲] (drustawә́l) مص.مت. جوړول، روغول، سمول، سیخول.

درستون (darastū́n) نر.م. د مخاطب و خواته راګرځېدونکی.

درسته (darastá) ښځ.م. ۱) تیرکش؛ ۲) وسله.

درسته والا (darastwālā́) ص.نب. وسله وال، وسله والا، د وسلې خاوند.

**درستي** ( drastáy ) نر.م. رښتینو شاهد، حقیقي شاهد، صادق شاهد.

**درستي** ( drustí ) ښځ.م. ۱) سموالی، جوړوالی، روغوالی؛ ۲) صداقت، رښتینوالی.

**درستېدل** ( drastedə́l ) مص.لا. تمامېدل، پای ته رسېدل، پوره کېدل.

**درستیزوال** ( drastizwā́l ) نر.م. د ارکان رئیس، د نظامي لوړې رتبې خاوند چې د عسکرې په تولو شقوقو (ارکان) کې معلومات ولري.

**درسي** ( darsí ) ص. چې تدریس کېږي، د درس، په درس پورې اړوند

**درشته** ( daruštá ) ښځ.م. ۱) کوتره؛ ۲) و.گ. دروشته.

**درشل** ( daršál ) نر.م. ۱) درشایي، د دروازې چوکاټ؛ ۲) کوټې یا ودانۍ ته د ننوتلو لاره؛ ۳) یو ډول سابه دي چې شکل یې گندنې ته ورته دی، ژېړ گل لري.

**درشول** ( daršól ) نر.م. یو ډول نبات دی.

**درشونډی** ( daršūnḍáy ) نر.م. سونډک، شونډک، وربوز.

**درښتن** ( draṣtán ) نر.م. ښېگڼه، نېکي، مرسته.

**درغل** ( dargál ) ص. نر.م. ۱) کوته، ناچله، کلپ، کلبه؛ ۲) منافق، دروغجن؛ ۳) پرېشان، خوار ٤) کلابند، محاصره، بند.

**درغلاند** ( dargalā́nd ) نر.م. فرېبکار، دروغجن.

**درغلنه** ( dargalána ) ښځ.م. خیانت، درغلي، منافقت، چل، چلبازي، تگي.

**درغلول** ( dargalawə́l ) مص. مت. ۱) نیول، کلابندکول؛ ۲) ناکراره کول، نارامه کول.

**درغلي** ( dargalí ) ښځ.م. و.گ. درغلنه.

**درغلی**[1] ( dargaláy ) ص.نر.م. منافق، چلباز.

**درغلی**[2] ( darğláy ) فا. نر.م. د مخاطب په لور ورغلی- زلمی همدا اوس درغلی (درغی).

**درغلی**[3] ( dáragalay ) فا. نر.م. په ماضي کې د مخاطب په لور ورغلی.

**درغلېدل** ( dargaledə́l ) مص. ل ۱) نیول کېدل، گېرېدل، محاصره کېدل؛ ۲) ناکرارېدل.

**درغن** ( dragán ) ص. نر.م. ۱) درزغن، درغزن؛ ۲) نر.م. درغې، شپانځه، دکانې پلنه تخته چې مساله پرې میده کوي؛ ۳) پلنونه، تخته کونگ ٤) پتارۍ، د مړي پرېمنځلو تخته.

**درغنی** ( draganáy ) نر.م. ۱) گڼه گونه، بېروبار، ازدحام؛ ۲) پایکوب، پایکو.

**درغوړه** ( darğwaṛá ) ښځ.م. درېبزې بوټی، هغه بوټی چې رېبځ یا جارو ورڅخه جوړوي.

**درغوږ** ( darğwáẓ ) نر.م ۱) و.گ. دروږ؛ ۲) نذري پسه.

**درغول**[1] ( dargól ) نر.م. ۱) پرچاو، اگل؛ د اوبو د خوشې کولو ځای؛ ۲) تنگی، تنگه دره.

**درغول**[2] ( darğawə́l ) مص. مت. ښوېړل، نغوتول.

**درغول برغول** ( dargólbargól ) ص. نر.م. گډوډ، وران ویجاړ، خراب تراب.

**درغولول** ( dargolawə́l ) مص.مت. درغولونه، په درغول (پارچاو) کې د ویالې اوبه خوشې کول.

**درغولېدل** ( dargoledə́l ) مص. ل. په درغول کې اوبه ایله کېدل.

**درغونه** ( dargawána ) ښځ.م. ښویونه، نغوتنه.

**درغی** ( daragáy ) نر.م. د مخاطب په لور لاړ، تستا خواته یې د تلنې عمل اجرا کړ.

**درغېدل** ( dargedə́l ) مص. ل. ښویېدل، نغوتېدل.

**درک**[1] ( drak ) نر.م. ۱) د دروازې رپ؛ ۲) د خونې غولی.

درک[۲] (darák) نر.م ۱) پته، نښه، نښانه، څرک، ښلگه؛ ۲) د اوبو د دانې سوري، د اوبو خوله؛ ۳) وخت، موقع..

درک[۳] (dark) نر.م. فهم، پوهه، قابلیت، ادراک کول، پوهېدنه، حسونه، تمیز.

درکار (darkā́r) نر.م. یو بوټی دی چې ژېړ گل او سپین ښخ لري.

درکړ (darakáṛ) نر.م. د گاډي د اراپې گردې کړې (حلقه).

درکړی (darkaṛáy) ښځ.م. غوجل، آغل؛ د غوایانو د درولو او ساتلو ځای او کوټه.

درکول (darkawə́l) مص. مت. ورکول (مخاطب ته)، تاته د درکړې د عمل اجرا کوونکی.

درکوونکی (darkawū́nkay) فا. نر.م. ورکوونکی (مخاطب ته)، تاته د درکولو د عمل اجرا کوونکی.

درکی (darkáy) نر.م. لومه، مرغیو او مرغانو د نیولو لومه.

درگ (drag) نر.م. ۱) درب، د زړه حرکت، د زړه درزا؛ ۲) د پښو اواز؛ ۳) ځنگل؛ ٤) ص.نر.م. د ژور ضد؛ ٥) نر.م. پهوار ځای کې لږه جگه برخه؛ محدب، لوړ ځای؛ ٦) ترینگلی.

درگا[۱] (dragā́) ښځ.ج. درگهار، دربهار، دربی.

درگا[۲] (dargā́) ښځ.م. درشل، دربار، استانه.

درگا[۳] (durgā́) ص. نب. مو. د بلاول ټاټ یو پنځه سُری (اوډو) راگ دی.

درگد (dargád) نر.م. دغنواره جوړونه، غنې اېښودنه، اغزې اېښودنه، ازغې جگونه.

درگرده (dargárda) ق. پرله پسې، مسلسل، متواتر.

درگړ[۱] (dargáṛ) ص.نر.م. ۱) برجسته، جوت؛ ۲) پرله پسې، یو په بل پسې.

درگړ[۲] (dragáṛ) نر.م. گودره، لاړی، کمکی تیر، وېښه، پشتول.

درگړې درگړې (dargáṛedargáṛe) ص.نر. ۱) توټې توټې، ذرې ذرې؛ ۲) د برغمجن، د سبتونزمن؛ ۳) تس و نس، گډوډ، وران ویجاړ.

درگوټې (dargū́ṭe) ښځ.م. د لوخو کمکی ځنگل، د کړکو کوچنی ځنگل.

درگه[۱] (dárga) ښځ.م. ۱) غوږگه، کړکی، نیچه؛ ۲) د شړو ځنگل، دورمو ډل.

درگه[۲] (drə́ga) ښځ.م ۱) د ببرې د راښکلو پړی؛ ۲) منډه، څغاسته، رگه.

درگهار (dragahā́r) نر.م. دربهار، درگی، درگا.

درگی (dragáy) نر.م. درگهار، د زړه دربی.

درگیې (dargayé) ښځ.م. ۱) د لوښو د اېښودلو الماری؛ ۲) د لوښو اېښودلو کوټه.

درل (drəl) مص. ل. و گ. درېدل.

درلل (darlə́l) مص.ل. لرل، درلودل.

درلودل (darlodə́l) مص.مت. و گ. لرل.

درلوول (darlowə́l) مص.مت. و گ. لرل.

درلوونی (darlowū́nay) فا.نر.م. درلودونی، لرونی، درلودونکی، لرونکی.

درله (darlá) ښځ.م. ۱) درلودل، درلوول، لرل؛ ۲) ق. و گ. درته.

درم[۱] (dram) نر.م ۱) د توپ د ډز اواز؛ ۲) د دېوال تکیه، پشتي.

درم[۲] (daram) نر.م. ۱) دهرم، مذهب؛ ۲) مج. دین او ایمان.

درمان (darmā́n) نر.م. درملنه، دارو درمل، دوایي، علاج.

درمانده (darmā́ndá) ص. نب. ۱) بېچاره، اډ، بېنوا؛ ۲) ستړی ستومان، لوېدلی.

**درمب** (dramb) نر.م. د ډول يا دريې اواز.

**درمبول** (drambawә́l) مص.مت. ١) ډول وهل دريه وهل؛ ٢) وهل، ټکول، په پښو باندې يو شی تخته کول.

**درمبهار** (drambahā́r) نر.م. درمبا، درمبی، د ډول يا دريې پرله پسې اواز.

**درمبېدل** (drambedә́l) مص.ل. ١) ډول ډبېدل؛ ٢) په پښو کېمنډل؛ ٣) ديوه شي د پاسه ټوپونه او دانګونه وهل.

**درمسال** (daramsā́l) نر.م. دسيکانو عبادتځای.

**درمغول** (daramaǧól) ص. نر.م. ګډوډ، درهم و برهم، درغول برغول.

**درمکښ** (dramkáṣ) نر.م. د کټې ګنډلو ستن.

**درمل**[1] (durmál) نر.م. ١) نيمه پخه مېوه؛ ٢) ځوانکی، زلمی، ژنکی.

**درمل**[2] (darmál) نر.م. ١) دارو، دوا؛ ٢) علاج.

**درملتوب** (darmaltób) نر.م. ډاکټري، طبابت، دارو درمل کول.

**درملتون** (darmaltū́n) نر.م. دواخانه، د درملو ځای، درمل ځای، ددوا خرڅولو ځای.

**درملګر** (darmalgár) ص. نر.م. دواکوونکی، طبيب، ډاکټر، معالج، تداوي کوونکی، درملی.

**درملوړ** (darmalwáṛ) نر.م. د علاج وړ.

**درمند** (darmánd) نر.م. د فصل دلی، راټول شوی فصل او غله.

**درمندځای** (darmandjā́y) نر.م. د فصل د ميده کولو او پاکولو ځای.

**درمنده** (darmánda) ښځ.م. درينده، د ځنيو ځرخنی، د سنيو ټوپکی، د سنيو غوټه.

**درمندی** (darmandáy) نر.م. د درمند تلی، هغه لږه غله چې د درمند له ټولولو وروسته په ځمکه باندې پاتې کېږي.

**درموډل** (durmuḍál) نر.م. نيزار.

**درمولی** (darmuláy) نر.م. درنګلی، غوبلرګی، هغه ډاګه چې د درمنده په منځ کې يې نښغه ښخوي او د غوبل لپاره غوايان ورسره تړي.

**درمه** (durmá) ښځ.م. ١) وګ. درومه؛ ٢) ځواني، ونه او ځېره.

**درناوی** (dranāwáy) نر.م. ١) دروندوالی، سنګيني؛ ٢) احترام، درنښت، لمانځنه.

**درنجی** (dranjáy) نر.م. کوچنيان د بار ... رنولو په وخت کې دا کليمه وايي.

**درند** (drand) نر.م. ١) د درمند شی؛ ٢) د ګيلاس د ونې په څېر يوه غرنۍ ونه ده.

**درندسترګی** (drandstә́rgay) نر.م. دروند سترګی، غرندی، بد سترګی.

**درندول** (drandawә́l) مص.مت. وګ. درنول.

**درنده**[1] (darindá) ص. نر.م. وحشي، څيرونکی.

**درنده**[2] (duránda) ښځ.م. ورېدونکې ورېځ.

**درندی** (drandáy) نر.م. د مېږو د ينې او کولمو ناروغي.

**درندېدل** (drandedә́l) مص.ل. وګ. درنېدل.

**درنښت** (dranáṣt) نر.م. درناوی؛ دروندوالی.

**درنګ**[1] (drang) نر.م. ١) وقفه، ډيل، ځنډ؛ ٢) کان، معدن؛ ٣) وچه کلکه او اواره ځمکه.

**درنګ**[2] (drang) نر.م. شرنګ، ترنګ؛ د رباب غږ او اواز.

**درنګلی** (drangaláy) نر.م. وګ. درمولی.

**درنګچاری** (drangčā́ray) نر.م. معدنچي.

**درنګول** (drangawә́l) مص.مت. ترنګول، شرنګول، د موسيقۍ له آلې نه اواز ايستل.

**درنګه** (drangá) ښځ.م. سخره، دمردارحيوان تنه.

درنګهار (drangahā́r) نر.م. ترنګهار، شرنګهار.

درنګېدل (drangedə́l) مص. ل. ترنګېدل، شرنګېدل، ټنګېدل.

درنواله (dranwā́la) ښځ.م. ۱) لويي، لويوالی، مشرتوب؛ ۲) درندوالی.

درنول (dranawə́l) مص. مت. ۱) عزت ورکول، قدر ورکول؛ ۲) وزن زياتول، دروندول.

درنه (draná) ښځ.م. ۱) د درند مؤنث؛ ۲) سخته او شديده ناروغي.

درنه (də́rna) ق. درڅخه، درځني، درشکه.

درنه مار (durnamā́r) ص. نر.م. جلات، جلاد، وژونکی، قتل کوونکی.

درنېدل (drandedə́l) مص. ۱) عزت ته رسېدل، عزتمند کېدل؛ ۲) وزن زياتېدل، تول زياتېدل.

درو (drow) ښځ.م. (ج. دروي) دوکه، دروه، چل.

درواز (darwā́z) ص.نر.م ۱) ترهور، ترور، وارخطا ۲) نسکور، سرچپه، پرمخ.

دروازګی (darwāzagáy) ښځ.م. وړه دروازه.

دروازه (darwāzá) ښځ.م. دړه، تمبه، ور.

درواغ (d(a,u)rwā́ğ) ص. نر.م. دروغ، د رښتيا ضد، چپه خبره کول، غلطه خبره کول.

درواغجن (darwāğján) ص. نر.م. دروغزن، دروغګو، دروغګوی، وعده خلاف، منافق.

دروان (darwā́n) ص. نر.م. دروانچي، څوکيدار.

دروبڼ (drubáṇ) نر.م. د مېلمه پالنې کړاو، د مهمانداری تکليف او جنجال.

دروپټ (durupát) نر.م. درېټ، دهرپد، دهرپټ؛ يو ډول لرغونې مشکله سندره ده.

درود (durū́d) نر.م. صفت، ستاينه، ثنا او صفت.

درودګر (drudgár) نر.م. ژرندګری، زرنده ګری.

درور (dror) نر.م. ندرور، د مېږه خور.

دروړن (darwaṛə́n) نر.م. دروړنګ، يو ډول بوټی دی چې جارو ترې جوړوي.

دروزګر (drūzgár) ص.نر.م. نجار، ترکاڼ.

دروزه (drū́za) ښځ.م. د غنمو يا اوربشو هغه ډنډر چې وږی ترې جلا شوي وي.

دروړی (darwā́ẓay) ص. نر.م. ۱) دروړ، هغه غواوې چې د نذر لپاره ټاکلې شوې وي.

دروښته (društá) ښځ.م. د ښنو وښو او بوسو ګډه، د ښنو او وچو وښو ګډه، د څارويو خواړه.

دروګر (drūgár) نر.م. خواخوږی.

دروګه (drūgá) ښځ.م. ۱) دبدبه، پرتم، برم؛ ۲) غمخواري، بندوبست.

درول (darawə́l) مص. مت. ۱) ولاړول، جګول؛ ۲) تمول، ځنډول، متوقف کول؛ ۳) بندول؛ ٤) کانديدول؛ ۵) مؤظفول، مقررول.

دروم (drum) نر.م. ۱) د توپ آواز؛ ۲) د مارش قومانده، درومه! مرش!

درومل (drūmə́l) مص.ل. تلل.

درومنه (drūmána) ښځ.م. تلنه.

درون (darwán) نر.م. نيزار، دورمونډل.

دروند (drū́nd) ص. نر.م. (ج. درانه) ۱) درون، زيات وزن لرونکی؛ ۲) باعزته، باوقاره.

دروند بار (drūndbā́r) نر.م. ګران بار، هغه غير ضروري سامان چې مخکې يې لېږي.

دروند باری (drūndbā́ray) نر.م. هغه وسيله چې باروړي؛ د دروند بار وړونکی.

دروند والی (drūndwā́lay) نر.م. ۱) د وزن زياتوالی؛ ۲) درنښت، سنګيني؛ مجازاً عزت.

دروندول (drūndawə́l) مص.مت. و ګ. درنول.

درونه (darawə́na) ښځ.م. ۱) ودرونه، جګونه؛ ۲) تمونه، ځنډونه؛ ۳) کانديدونه؛ ٤) موظفونه.

**دروڼ** (darwáṇ) نر.م. درونی، نیزار، د دورمو ځنګل.

**دروه** (daráwa̧) ق. فوراً، سمدستي، بې ځنډه.

**دروه** (droh) ښځ.م. ۱) تګي، چل، دوکه، غولونه؛ ۲) اندېښنه، چورت، وېره، ډار.

**دروهل** (drohə́l) مص. مت. ۱) له چا سره تګي کول، غولول؛ ۲) ځورول، په عذابول.

**دروهلی** (drohálay) ص.نر.م. خاین، درغل.

**دروهنه** (dróhə́na) ښځ.م. تګي او برګي کول.

**دروهونکی** (drohū́nkay) نر.م. چمبازه، چلي، تګ.

**دروهه** (dróha) ص. نر.م. دوکه باز، چلباز.

**دروهېدل** (drohedə́l) مص.ل. ۱) غولېدل، تېر وتل؛ ۲) اندېښمنېدل، وېرېدل.

**دروی** (dárway) نر.م.و ګ. دورمه.

**دروېزګر** (darwezgár) ص. نر.م. فقير، سوالګر.

**دروېزه** (darwezá) ښځ.م. ګدايي، سوالګري.

**دروېش** (darwéš) ص.نر.م. فقير، قلندر، ملنګ نېستمن، غريب.

**دروی والا** (darwaywālā́) نر.م. درمه والا، دورمې خرڅوونکی، د دورمو خاوند.

**دره**[1] (dará) ښځ.م. تنګی، ناره، ناو، وت، تاله؛ دوو غرونو په منځ کې وادي.

**دره**[2] (durá) ښځ.م ۱) تازيانه، متروکه، قمچينه؛ ۲) کاکوره.

**درهدکې** (darhádke) ند. بسم الله، خير غوندې يو کليمه ده چې د کومې پېښې په مقابل کې عاطفي حالت څرګندوي.

**درهم وبرهم** (darhámubarhám) ص. نر.م. ج. ګډوډ، تيت و پرک، وران ويجاړ، بې ترتيبه.

**درهه** (darhá) ښځ.م. پاړو، جادو.

**دری** (daráy) ښځ.م. سترنجي، شترنجي.

**درياب** (daryā́b) نر.م. دريا، بحر، سمندر؛ رود، سيند.

**دريابي** (daryābí) ص. نب. ۱) د درياب، درياب ته منسوب؛ ۲) مج. لوی، پراخ، تبحر؛ ۳) مج. سخي، د خلاص نيت څښتن.

**درې اړخيز** (drearxíz) ص. نر.م. ج. درې څنګيز، درې خوا نکی، درې څنډی، مثلث.

**درې ايکيځه** (dreekíǰa) ښځ.م. درې ايکيزه، پنځه پولی.

**درې بوجه** (dréboja) نر.ج. پ. ک. کله چې په يوه تاکلې قضيه کې مرکه چيان وتاکل شي او کله کله بيا طرفين د مسابقې په ډول دغه شمېر درې چنده کوي، دې ته درې بوجه وايي.

**درې پښيز** (drepṣíz) ص.نر.م. درې پښو والا، هر هغه څه چې درې پښې ولري.

**درې پلئ** (drepaláy) نر.م. د ښېدې يوه لوبه ده.

**دريځ** (daríǰ) نر.م. ۱) د درېدلو ځای، منبر، لوړ ځای؛ ۲) موقف، استقامت.

**دريڅه** (daricá) ښځ.م. دروڅه، کړکۍ، وړه کړکۍ.

**درېدل** (daredə́l) مص. ل. ۱) ولاړېدل، جګېدل، لګېدل؛ ۲) تمبدل، ځنډېدل؛ ۳) تاکل کېدل.

**درېدنځی** (dredánǰáy) نر.م. تم ځای، درېدځی.

**درېږ** (dreẓ) امر. ۱) ودرېږه، درېش؛ ۲) عس. د درېدلو يا د حرکت د توقف لپاره عسکري امر يا قومانده؛ ۳) د درېدل د حال د فعل بنسټ.

**درېسکلی** (dreskálay) نر.م. درې کلن اوښ.

**درېش** (dreš) امر. ۱) و.ګ. درېږ؛ ۲) د سر او ږيرې جوړول؛ ۳) د ځمکې لوړه او ژوره سمول.

**درېشي** (darešī) ښځ. م. کرتي او پتلون.

**درې شېرلی** (drešerláy) ص. نر.م. ځلور کلن پسه، يا وزګړی.

**دري ښاخی** (dreṣāxáy) ښـځ.م. دري غـاښې، دري غاښې سکو، ښاخې.

**درېښکی** (dreṣkáy) نر.م. جلب، واګه، کیزه.

**درېغ** (dreğ) نر.م. ۱) وش، آه، د افسوس او ارمان کلیمه؛ ۲) سپما، ساتنه، صرفه، اسره.

**درېغول** (dreğawə́l) مص.مت. نه ورکول، سپمول.

**درېګټ** (dregáṭ) نر.م. یو ډول لوبه ده.

**درېګون** (dergū́n) عد. ص. له درېو ځخه جوړ، د درو، درې واره، درې چنده، د درېو مجموعه.

**درېګی** (dregáy) نر.م. د جوارې یو ډول لوبه ده.

**درېمان** (dreymā́n) نر.ج. ب. ک. هغه بېطرفه منځګړي دي چې دروغي لپاره تاکل کېږي.

**درېم بریدمن** (dreyámbredmán) نـــر.م. د عسکري صاحب منصبانو تر ټولـو ټیټه رتبه ده چې له ملکي لسمې رتبې سره معادله ده.

**درېم څارن** (dreyámcārán) نر.م. د پولیسـو په تشکیل کې یوه رتبه ده چې په عسکري تشکیل کې د درېم بریدمن لـه رتبې سره او په مـلکي تشکیل کې له لسمې رتبې سره برابره ده.

**دري مخی** (dremə́xay) ص. نر.م. درې خواییز، درې خواوې لرونکی، درې اړخه لرونکی.

**درېمګړی** (dreamgáṛay) ص. نر.م. منځګړی، درېمـان، منصف ثالث؛ و ګ. درېمان.

**دریمه کجه** (dreyámakajá) ص. نـر.م. شپږ غاښی، هغه غویی چې عمر یې څلور کاله وي.

**درینده** (drindá) ښـځ.م. (ج. درنـدې) سـنی، د سنیو کلاوه، د سنیو کاړي، د سنیو لړی.

**دریندی** (drínday) نر.م. درېنځی، درندی، د مېږو او پسونو یو ډول ناروغي ده.

**درینګ** (dring) نـر.م. ۱) کلک، کلکـه ځمکه؛ ۲) د ونو ځنګل، د ونو باغ.

**درینګل** (dringə́l) مص. مت. کېمنځل، سختول، خوږول، په یوه شي کې په زوره منډل.

**درینګول** (dringawə́l) مص. مت. ۱) ټینګـول، تخته کول؛ ۲) کشول (د رسی یا پړي).

**درینګه** (drínga) ښځ.م. کلک او سخت.

**درینګی** (dringáy) نر.م. ۱) یو ډول ناروغي ده؛ ۲) کلکه ځمکه، سخته ځمکه، کرړ ځمکه.

**درینګېدل** (dringedə́l) مص. ل. ۱) ټیـنګـېدل، تخته کېدل؛ ۲) کشېدل؛ ۳) د یوه شي د پاسه ګرځېدل یا ټوپونه وهل.

**درینی** (drínay) نر.م. سپنګه، تمبزی، سوړمه.

**دري نیم سره** (drenímsara) پ. ک. که څوک د یوې نجلۍ تر ورکولو وروسته منکـرشي نو هغې له خپلوانو څخه درېو نارینه او یوې ښځې ته قسم ورکوي چې دې ته دري نیم سره وایي.

**دري ورګی** (drewárgay) ص.نر.م. درې سکلی، درې کلن اوښ.

**دریه** (daryá) ښځ.م. داریا، داریـال، چمبه، تمبل، دریا، دریاګی، دایره.

**دړ** (daṛ) نـر.م. ۱) پانګ، پارسـنګ، د دواړو تلو د برابرولو لپاره یو اضافي شیز؛ ۲) لـویه تله، کـپان؛ ۳) قـد، قـواره، بنه؛ ٤) اوچته ځمکه؛ ٥) د غره اوچته څوکه، دړه.

**دړد** (dard) نر.م. و ګ.: درد.

**دړدړ** (daṛdáṛ) ص.نر.م.ج. ذره ذره، ټوټه ټوټه.

**دړدړی** (daṛdaṛáy) نر.م. د پښې پایکو، یو لنګه پایکوب.

**دړدنګ** (daṛdáng) نر.م ۱) دوړدنګ، دړېدنګ، په تریکو، په یوه منـډه، سمدلاسه؛ ۲) شېبه؛ ۳) په غړانګو ژړا؛ ٥) ګډه وډه سندره، بېخونده او بې مزې سندره.

**دړدوبړه** (dardúbṛa) ښځ.م. په شور و ځوږ، په غوره کې، جوښ و خروښ.

**دړدوړ** (dardúṛ) ص. نر.م. مات ګوډ، میده میده.

**دړز**[1] (dṛaz) نر.م. د ټوپک د ډز اواز.

**دړز**[2] (daṛz) نر.م. درز، چاک، چاود، درغ.

**دړکه** (daṛaká) ښځ.م. ډپ، پتکه، تهدیدونه.

**دړکېدل** (dṛakedə́l) مص.ل. درزېدل، ګرېدل، ورتل، تکان یا غورځېدنه، زړه دړکېدل.

**دړوایي** (daṛwāyí) ص. نر.م. تولګر، تلونکی.

**دړوکې** (daṛúke) ښځ.م. ۱) تخته او د لرګي وړه ټوټه؛ ۲) یژي، شونټی؛ ۳) د جنغوزي د ونې وړوکی لرګی چې د ډېوې پرځای یې بلوي.

**دړه** (dáṛa) ښځ.م. ۱) له لرګي یا هډوکي نه بېله شوې ټوټه؛ ۲) ور؛ ۳) د لرګي چاود؛ ۴) د ختکي ترازه ۶) ونه، قد؛ ۷) اوچته ځمکه؛ ۸) د غره اوچته څوکه؛ ۹) د تش لوښي تلل.

**دړه دړه** (dáṛadáṛa) ښځ.م. دړې دړې، ټوټې ټوټې.

**دړه دوړه** (daṛadúṛa) ښځ.م. شور ماشور.

**دړه ماکو** (daṛamākú) نر.م. شمخه، یو ډول بوټی دی چې په شولو کې کېږي.

**دړی** (daṛáy) نر.م. ۱) څاڅکی، قطره، ذره؛ ۲) هغه لوښی چې مایع یا غوړ وریاندې اندازه کېږي.

**دړې** (dáre) ښځ.م.ج. ۱) کړکۍ؛ ۲) د لرګي ټوټې.

**دړۍ** (daṛə́y) ښځ.م. ۱) له پنځو کیلو برابر وزن؛ ۲) د زړو یو ډول ګانه ده چې ښځې یې په تنده تومبي یا خروي؛ ۳) د لوښو او خوراکي شیانو د ایښودلو الماری.

**دړې دړې** (daredare) ښځ.م. ټوټې ټوټې.

**دړېژ** (daṛə́ž) نر.م. د لاندې یوه غټه او ګرده ټوټه غوښه چې یوازې او جلا خوړنده وي.

**دړې وړې** (daṛewáre) ښځ.م. ۱) ټوټې ټوټې، ذرې ذرې؛ ۲) مج. ګډوډ، تس نس.

**دزار** (dozā́r) نر.م. جوار، جواري، د جوارو غله.

**دزارینه** (dozārína) ښځ.م. جواري، بسوکړک، ګډلی، سوړسک، پیاځه، د جوارو ډوډۍ.

**دزړه له کومي** (dəzṛəlakúmi) په وازکومي، د زړه له تله، په ټوله مینه، په ډېره مینه.

**د زنګانه سترګه** (dazangānastárga) ښځ.م. تبخی، ټیټکی، د زنګانه سر، زنګون.

**د ژواک بندګان** (dažwākbandagā́n) هغه مریان چې د خرڅلاو او سوداګرۍ لپاره نه، بلکې د خدمت لپاره وي..

**دساري په توګه** (dasāripatóga) اا. د بېلګې یا مثال په ډول/توګه.

**دسپنه** (daspaná) ښځ.م. هغه اوسپنیزه آله ده چې ختګران خته یا مساله پرې هواروي؛ ۲) کړه، کړۍ، حلقه، د ټوپک ماشه.

**دست** (dast) نر.م. ۱) د اسهال په وخت د عمل شمېر؛ ۲) اسهال، له نسه کېدن، نس ناسته.

**دستار** (dastā́r) نر.م. (ج. دستارونه) لنګوټه، لنګوټی، پټکی، پګړۍ، لونګی.

**دستاوېز** (dastāwéz) نر.م. ۱) دلیل، مدرک، سند؛ ۲) لاسوند؛ ۳) وسیله، بهانه، پلمه.

**دست بازي** (dastbāzí) ښځ.م. لاس وهنه، خیانت، ناوړه استفاده، ناروا ګټه.

**دستخط** (dastxát) نر.م. لاسلیک، امضاء.

**دسترس** (dastrás) ق. مهارت، لاس لرنه.

**دسترګوتور** (dastárgotór) نر.م. مج. ۱) زوی ۲) ډېر ګران، محبوب.

**دستک** (dasták) نر.م. ۱) لاړی، ډاګه، د خونې د پوښښ لرګي؛ ۲) د مواصلاتو دوسیه؛ ۳) پرلویو

لارو له مسافرانو څخه د مالیې اخیستنه؛
٤) اجازه لیک، پاسپورټ؛ ٥) دسملاسي حسابو کتابچه.

**دسکښه** (daskáṣa) ښځ.م. دسکله، لاسکله، دست کش، لاس ماغو، لاس وهلی.

**دستکول** (dastkáwal) نر.م. د ځان جوړولو د سامانو، روپیو او... د ساتلو یوه وسیله ده چې ښځې یې له ځانه سره ګرځوي.

**دستکی** (dastakáy) نر.م. ١) برګه، نیم لړی، بهاړی، تیر، لنډ دستک؛ ٢) دکتې دواړو خواوو ته د نیم متر هومره واړه لرګي.

**دستکۍ** (dastakə́y) ښځ.م. ج. د لاس ډوډۍ.

**دستګاه** (dastgā́h) ښځ.م. (ج. دستګاوې) ١) کارخانه، فابریکه؛ د لاسي صنایعو د تولید ځای؛ ٢) توان، قدرت؛ ٣) پرتم؛ ٤) پانګه.

**دستمایه** (dastmāyá) ښځ.م. (ج. دستمایې) د ډال او سپر د لاس نیولو ځای او تسمه.

**دستمبول** (dastamból) نر.م. پرپنو، استمبول، مشنګه، د ورکوټي ختکي په شان یوه خوږبویه میوه ده.

**دستور** (dastúr) نر.م. (ج. دستورونه) ١) دود، رسم، رواج؛ ٢) قانون، قاعده، طریقه، فرمان، امر؛ ٣)) اق. وګ. ادر؛ ٤) وګ. اماله.

**دستورالعمل** (dastūrulʿamál) نر.م. ١) هدایت، لارښوونه، کړنښود، دعمل لارښود؛ ٢) مراسم.

**دستوري** (dastūrī́) ص.نب. د دستور، په دستور پورې اړوند، د وظیفې له مخې، ګومارلی.

**دسته** (dastá) ښځ.م ١) لاستی، لاسکی؛ ٢) ګلدسته ګېډۍ، بنډل؛ ٣) تېج، مقدار؛ ٤) ټولی، ډله.

**دسته بندي** (dastábandī́) ښځ.م. پرګروپ ګروپ یا ډلو ډلو وېشنه، ډله ډله کونګ.

**دستي** (dastí) ق. اوس، همدا اوس، سمدلاسه، سملاسي.

**دسره** (dasára) ق. ١) بالکل، له سره، ګردسره، بېخي، کوړټ، هېڅ، هډو؛ ٣) ختم، پای، آخر.

**دسلاپ** (daslā́p) نر.م. بونی، د لومړني خرڅلاو پیسې.

**دسمال** (dasmā́l) نر.م. رومال، رومیال، څپوټی، څپونی.

**دسماله** (dusmā́la) ښځ.م. وګ. خاملتی.

**دسوی ختکی** (dasóyxaṭakáy) نر.م. ١) یو دښتي جلغ لرونکی بوټی دی.

**د سهار سترګه** (dasā́harstə́rga) ښځ.م. رڼه سترګه، د سهار ستوری، د سبا سترګه.

**دسیسه** (dasisá) ښځ.م. توطیه، لانجه، حیله.

**دشپې نوم** (dašpenúm) ا. پوځي او استخباراتي نوموونه، چې په بندیزي (ممنوعه) سیمو کې له ګرځېدونکیو غوښتل کېږي.

**دشت** (dašt) نر.م. وګ. دښت.

**دشکانه سترګه** (daškāṇastárga) ښځ.م. د سهار یوه روڼ ستوري دی.

**دشلمه** (dašlamá) ښځ.م. تشلمه، له چایو سره خوړل کېدونکی خوږه.

**د شودومور** (dašudomór) ښځ.م. رضاعي مور.

**دشومه دم انګازې** (dəšummdamangāzé) ا. شپېنۍ هنګامې یا انګازې.

**دښت** (daṣt) نر.م. دښته، سارا، صحرا، میره، ډاګ، بیابان، بېدیا.

**دښکو** (daṣkū́) نر.م. د شیخدو په ډول یوه مرغۍ ده.

**دښمن** (doṣmán) نر.م. دښن، دشمن، میرڅی، دښنو، غلیم، دښنه، بدخواه، خصم.

**دښمنانه** (dosmanānā́) ص. میرځي، په دښمنۍ، غلیمانه.

**دښمني** (dosmaní) ښځ.م. بدي، غلیمي، رټي.

**دښمنېدل** (dosmanedə́l) مص. ل. مخالف کېدل، رټېدل، غلیم کېدل، بدېدل، ورانېدل.

**دښې وتل** (daṣéwatə́l) مص. ل. له کاره وتل، خرابېدل، په درد نه خوړل.

**دعا** (dusā́) ښځ.م. (ج. دعاګانې) ۱) غوښتنه، درخواست، خواست، سوال، حاجت.

**دعوا** (daswā́) ښځ.م. و ګ. دعوه.

**دعوت** (daswát) نر.م. ۱) بلنه، راغوښتنه، رابلنه؛ ۲) مېلمستیا.

**دعوتنامه** (daswatnāmá) ښځ.م. بلن لیک، د بلنې بانه، د بلنې رقعه، د بلنې کارډ.

**دعوه** (daswá) ښځ.م. دعوا، دنګله، لانجه، شخړه، جګړه، ادعا، د حاکم په وړاندې له یوه سړي څخه د بل سړي حق غوښتل؛

**دغا** (daǧā́) ښځ.م. تګي، چل، چم، دروهه، مکر.

**دغځی** (daǧǰáy) نر.م. وچ لاس، فلج لاس.

**دغدغه** (daǧdaǧá) ښځ.م. ۱) وېره، ډار، تراره؛ ۲) هنګامه، آوازه، انګازه؛ ۳) تخنونه، تخنی؛ ٤) تخت، پلاز، ګدۍ.

**دغدغی** (daǧdaǧáy) ص. نر.م. دوکه مار، تګ برګ، تګمار، چمباز.

**دغدوغ** (daǧdū́ǧ) نر.م. دوکه، چل ول، فرېب، تګي.

**دغدوور** (daǧdawū́r) نر.م. یوه مرغۍ ده چې ځونکه (پیک، کاکل) لري.

**دغدوغی** (daǧdūǧáy) ص. نر.م. تګمار، چمباز.

**دغډغی** (daǧḍaǧáy) نر.م. ۱) د لمر وړانګه؛ ۲) هغه باران چې غټې غټې څاڅکي ولري.

**دغره تماکو** (daǧratamākū́) نر.م. غرنی بوټی دی چې په چلم کې څکل کېږي.

**د غره چای** (daǧračā́y) نر.ج. خړ رنګه غرنی بوټی دی چې د چایو کار ترې اخیستل کېږي.

**د غره مږ** (daǧramáẓ) نر.م. غرنی پسه.

**دغسې** (dáǧasi) ض. ۱) داسې، دارې، داډول، همدارنګه، همداډول؛ ۲) د نر غوندې.

**دغل** (daǧál) ص. نر.م ۱) درغل، کوټه؛ ۲) مکار، منافق، تګ.

**دغلته** (dáǧalta) ق. په دغه ځای، دلته، په دې ځای کې، په دغه ځای کې.

**دغوا غولانځه** (daǧwāǧulā́nǰa) ښځ.م. د غوا غلامځه، یو ډول وابښه دي.

**د غوایي ژبې** (daǧwāyižabáy) ښځ.م. ګاوزبان، یو ډول طبي بوټی دی.

**د غوایي سترګه** (daǧwāyistə́rga) ښځ.م. ۱) ساعت، ګړۍ؛ ۲) یو راز سارایي ګل دی.

**دغومره** (daǧū́mra) ص. دومره، دغه هومره، په دې اندازه، دومره قدرې، دغونه.

**دغه** (dáǧa) ض. ۱) دا، نیږدې اشاري ضمیر دی؛ ۲) ض. همدا، همدغه.

**د غېږې روغبړ** (deǧeẓeroǧbáṛ) نر.م. بېره ګړه، بړګندي، تر غاړ و وتل، معانقه.

**دف** (daf) نر.م. و ګ. دریه.

**دفاع** (difā́s) ښځ.م. مدافعه، مخه نیونه، ساتنه، ژغورنه، حمایت.

**دفاعي** (difāsí) ص. نب. ددفاع، د مدافعې، دفاع ته منسوب.

**دفتانګ** (deftáng) نر.م. و ګ. ډیفتانګ.

**دفتر** (daftár) نر.م. دولتي اداره، اداري څانګه، د یوې ادارې د اسنادو د ثبتولو کتاب.

دفتري (daftarí) ص. نسب. ۱) دد فتر، دفتر ته اړوند؛ ۲) د شمسي، دفتري لیک؛ یو ډول لیک دی.
دفعه (daf'á) ښځ. م ۱) ایسته کونګ، شړنه، تمبونه، ردونه، لیرې کونه؛ ۲) کرارونه، کینونه.
دفعتاً (dafatán) ق. له واره، نابېره، ناڅاپه، یو په یو، په یو ه وار، وار له واره.
دفعه (daf'á) ښځ. م. وار، پلا، ځل، نوبت.
دقت (diqát) نر. م. غور، توجه، ځیرېدنه، پام.
دقیق (daqíq) ص. نر. م. ص. نر. م. ځیر، متوجه، پام کوونکی، باریک بین، کره، ځک، حساس.
د ک (dak) نر. م. ۱) علت، بانه؛ ۲) اریانتیا.
د کارګه ټکۍ (dakārgaṭakáy) ښځ. م. ټکلۍ، ښېرک، یو ډول بوټی دی چې سابه ترې پخوي.
دکارګه ټونګه (dakārgaṭūngá) ښځ. م. د غاټول ګل له کورنۍ، ځخه یو شین ګل دی.
دکازی (dakā́zay) نر. م. دوګازه، تور، د مرزانو د نیولو یو ډول جال دی.
دکولمو شوله (dakulmóšwála) ښځ. م. پېچ، نس خوږی، کولمه خوږی، پېچش.
دکۍ (dakáy) ښځ. م. لوغۍ، غوا لوشه، خاورین لوښی دی چې غوا په کې لوشي.
دګ (dag) نر. م. ۱) دګی، کونده؛ ۲) بې وفایي؛ ۳) د زړه پته خبره؛ ٤) خرېدلی سر؛ ٥) یو ډول ګانه ده؛ ٦) اړم، تمبه.
دګدګلی (dagadagaláy) نر. م. دګړلی، د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.
دګل (dagál) مص. مت. ۱) ترټل، دسل، غندل، رټل، کړل، منت کول؛ ۲) نر. م. تیر، لاړی.
دګل مری (dagwálmaráy) ښځ. م. هغه هندوانه، ختکی، بادرنګ چې نوی له ګله وتلي وي.

دګلی (dagaláy) صف. نر. م. رټلی، دسلی، رټل شوی، غندلی، ترټل شوی.
دګلي (dagalí) ښځ. م. منت باري، منت، احسان.
دګوتو په شمېر (dagwatópašmér) ص. لږ شمېر، یو څو، خال خال.
دګوتوستوری (dag(wá,u)tostóray) نر. م. دګوتواوری، دګوتو لوځې.
دګه دګه تي (dágadágatí) ښځ. م. د جنګي پسونو د جنګولو په وخت کې ویل کېږي.
دګیدړواده (dagi daṛwāda) نر. م. ۱) په ښنه آسمان باران اوربدل؛ ۲) د سیلۍ چورلېدونکې بړبوکی.
دل (dal) نر. م. ۱) ورغستلي، ګور، ګوري، دلده؛ ۲) میده شوي شاخل چې څارویو ته ورکول کېږي؛ ۳) ص. نر. م. ج. خوشې، بېځایه.
دلاسه (dalā́sa) ص. نب. ۱) دلاسا، راضي، رضا؛ ۲) ښځ. م. تسلي، ډاډ ګیرنه.
دلاسه لا (dalāsalā́) ق. نورهم، سربېره پر دې.
دلاک (dalā́k) نر. م. سلماني، نایي، ډم، ګلابي.
دلال (dalā́l) ص. نر. م. (ج. دلالان) ۱) هغه څوک چې د پلورونکي او پېرودونکي ترمنځ جوړه راولي؛ ۲) ګومارلی کس؛ ٤) رویبار، ریبار.
دلالت (dalālát) نر. م. ۱) بومیا ګلوي؛ ۲) برهان، دلیل، پوهونه، لارښوونه، اطلاق، شاهدي.
دلاور (delāwár) ص. نر. م. زړور، زمری، شجاع.
دلبر (delbár) فا. نر. م. (ج. دلبران) زړه وړونکی، ښکلی، معشوق، محبوب، مطلوب.
دلبري (delbarí) ښځ. م. ۱) زړه راکښنه، زړه وړنه؛ ۲) ناز، ادا، خرام، عشوه، نخره.
دلبند (delbánd) نر. م. ۱) لېمون؛ ۲) زړه پورې، په زړه پورې؛ ۳) د سترګو تور، د زړه ټوټه.

**دلبه** ( dalbá ) ښځ.م. طمعه، د ښکاري مارغانو د رابللو لپاره د غوښې يوه ټوټه نيول.

**دلپل** ( dalpál ) ص.نر.م. چونلی، چملوک، گونجې شوی.

**دلتنگ** ( deltáng ) ص.نر.م. زړه تنگی، خوابدی، غمگين، خپه، خواشينی، زړه نيولی.

**دلته** ( dálta ) ق. دلې، ديلې، دې ځای ته، دېخواته.

**دلجويي** ( deljūyí ) ښځ.م. شفقت، مهرباني، ډاډگېرنه، تسل، دلاسايي.

**دلچسپ** ( delčásp ) ص. نر.م. په زړه پورې، په طبعه برابر، خوږ، صميمي.

**دلخواه** ( delxwāh ) ص. نر.م. زړه غوښتونکی، مطلوب، منلی، خپله خوښه.

**دلداده** ( deldādá ) ص. نب. مين، عاشق، زړه بايللی.

**دلدار** ( deldā́r ) ص. نر.م. محبوب، معشوق، خوږ.

**دلداري** ( dldārí ) ښځ.م. ډاډگېرنه، تسل.

**دلدل** ( daldál ) نر.م. مرغه، جبه، جبه زار، پلندی چرچونه ځمکه، دلن، مړه او بيزه ځمکه.

**دلده** ( daldá ) ښځ.م. گور، اوگره، ورغستلې، دل.

**دلربا** ( delrubā́ ) ښځ.م. ۱) زړه وړونکې، معشوقه، مينه؛ ۲) مو. د سريندې غوندې يوه آله ده.

**دلسرد** ( delsárd ) ص.نر.م. نا اميده، مايوسه.

**دلسوز** ( delsóz ) ص.نر.م. زړه سواندی، مهربان.

**دلگی** ( dalgáy ) ا. ډلگی، لس کيزه پوځې ډله.

**دلگير** ( delgír ) ص. نر.م. خپه، زړه نيولی.

**دلگی مشر** ( dalgaymášar ) ا. د لس کسيزې پوځې ډلې مشر.

**دلل** ( dalál ) نر.م. ج ۱) سترتيا، ستړيا، زله توب؛ ۲) خواري، فلاکت.

**دلمرتله** ( dalmártala ) ښځ.م. د ستورو د لوړوالي د معلومولو آله.

**دلمرسترگه** ( dalmárstárga ) ښځ.م. لمر، غارمه، د لمر تېکلی، د لمر تبی، د لمر تکی.

**دلنی** ( dalanáy ) نر.م. لواړه، دلده چې ميده اوړه ترېنه بېل شوي وي.

**دلو** ( dálwa ) ښځ.م. ۱) سلواغه، بوکه، سطل، ډولچه؛ ۲) دلمريزکال يوولسمه مياشت.

**دلول** ( dalawə́l ) مص.مت. ۱) دل کول، ميده کول؛ ۲) مج. پرتې ويل، چټياټ ويل.

**دلون** ( dalū́n ) نر.م. سيارکه، شمخه، يو ډول زيانمن واښه دي.

**دله** ( dalá ) ص.نر.م. بروه، دووس، بې غيرته.

**دله خپک** ( dalaxapák ) نر.م. خپک، دله گک، د پيشو هومره يو حيوان دی.

**دلې** ( dalé ) ق. دلته، دېلې، دغلته.

**دلی** ( daláy ) ښځ.م. ۱) کوټه، امبار؛ ۲) ص. نب. (مج.) زښت ډېر، ښېخې زيات، پريمانه.

**دلېدل** ( daledə́l ) مص.ل. دل کېدل، دلده کېدل، اوگره کېدل، ميده کېدل.

**دلېگه** ( dlegá ) ښځ.م. ډگره، شاړه ځمکه.

**دليل** ( dalíl ) نر.م. ۱) ثبوت، برهان، حجت؛ ۲) ل.م. لارښوونکی؛ ۳) نخښه، علامه.

**دليلي** ( dalilí ) ص.نب. ۱) د دليل، د برهان، د حجت، په دليل برابر؛ ۲) يقيني، مقنع، ثابت.

**دلېوه اور** ( dalewaór ) نر.م. يو ډول بوټی دی.

**دم** ( dam ) نر.م. ۱) نفس، سا؛ ۲) ص.نر.م. چوپ، غلی؛ ۳) نر.م. چف، دعا؛ ٤) شيبه، لحظه؛ ٥) ناڅاپه، ٤) بنی، د اهنگر بنی؛ ٦) پخېدنه؛ ۷) براس، بخار.

**دما** (۱) ( dimā́ ) ض. وگ. زما.

**دما** (۲) ( dámā ) نر.م. درمبهار، د توپونو د ډزو پرله پسې اوازونه.

دمار (dámmār) نر.م. دهمار، له ١٤ ماترو څخه جوړشوی تال دی، دري ضربه اودري خالي لري.

دمار ژبی (damāržabáy) ښځ.م. يو ډول نبات دی چې له سر نه تر بېخه پوري پاڼې لري.

د ماښام ستر گه (damāṣāmstárga) ښځ.م. د مېلمانه ستر گه، زهره، د ماښام ستوری.

دماغ (damā́ğ) نر.م. ١) ماغزه، مغز، د سرماغزه؛ ٢) لويي، تکبر، غرور، کبر.

دماغجن (damāğján) ص. نر.م. ج. دماغـژن، کبرجن، مغرور، د لويي او کبر خاوند، متکبر.

دماغگی (d(i,a)māğgáy) سيري ببلم، مخيخ، د دماغ د شا په ښکته خواکې د يوې دماغي برخې نوم دی.

دماغه (d(a,i)māğá) ښځ.م. ورسک، د پوزې په څېر وتلې ځای لکه د غره دماغه.

دماغي ځواک (demāğijẃāk) ا. دماغي قوه يا قوت، فکري ورتيا.

دمامه (damāmá) ښځ.م. ١) فضا؛ ٢) دمامه، نغاره، ډنډوره.

دمباله (dombālá) ښځ.م ١) آخر، وروسته، پای؛ ٢) دمبيله، د کوچيانو هغې خورجينې چې قيمتي شيان په کې ساتي.

دمبوره (dambūrá) ښځ.م. وگ. تمبوره.

دمبول (dambawə́l) مص. مت. خوځول، حرکت ورکول، ښورول.

دمبولا (dambūlā) نر.م. د کوچيانو يو ډول خاصه خورجينه ده.

دمپخت (dampóxt) نر.م. ج. په دم پوخ شوی، په براس يا بخار پوخ شوی.

دم په دستي (dámpadastí) ق. فوري، فی الحاله، ژر تر ژره، له واره، سملاسي.

دم په دم (dámpadám) ق. ١) شبه په شبه، وخت په وخت؛ ٢) پرله پسې، بې وقفې.

دمڅ شيطان (damátšaytán) نر.م. د خاورو شيطان، د شگې شيطان، کولولو، يو ډول حشره ده چې تر خاورو لاندې ژوند کوي. شيطانکه.

دمچي (dumčí) ښځ.م. هغې ښځې چې داس تر لکۍ لاندې تېره شوې.

دمخنی (damaxanáy) ص. نر.م. پخوانی، لومړنی، لرغونی، د دمخه، مخنی، مخکيني.

دمخه (damáxa) ق. ١) مخکې، وړاندې، ړومبی؛ ٢) پخوا، څنډن؛ ٣) په وس، په طاقت کې.

دمخه والی (damaxawā́lay) نر.م. د مخه توب، مخکې والی، وړاندې توب، څنډنتوب.

دمدار (damdā́r) ص. نر.م. ١) په کراره، په دمه؛ ٢) ساکښ؛ ٣) دم لرونکی، غځېدونکی.

دم درحاله (dámdarhā́la) ق. ١) فوري، فی الحاله، سمدلاسه؛ ٢) همدا اوس، اوس.

دمدړه (damdáṛa) ښځ.م. خنگری، هغه آله چې د تنستې تارونه ښکته پورته کوي.

دمدمال (damdamā́l) نر.م. يو ډول رش دي چې ښځې پرې غاښونه مينځي يا شونډې ورباندې سرې کوي.

دمدمه (damdamá) ښځ.م. ١) بدايي؛ ٢) فخر، کبر، غرور؛ ٣) ډېری، کوټه، دلۍ، انبار.

دمرداري موږی (damurdārimawẓáy) نر.م. پيلاتی، شراچوونکی او پتنه سرې.

دمرده (damrada) ښځ.م. د ژرندې ادم.

د مرغۍ کنی (damurğaykanáy) نر.م. يو ډول واښه دي چې پر شوتلو باندې راتاوېږي.

دمړی (damṛə́y) ښځ.م. ١) دملی، د دام اتمه برخه؛ ٢) مج. کم شی، لږ څيز، لږې پيسې.

**دمساز** (damsáz) ص. ملگری، همدم، همراز.

**دمک** (damák) نر.م. ۱) شبیه، لحظه، لږ وخت؛ ۲) دمه، آرام، سیاله؛ ۳) تپک، د اوسپنې هغه آله چې خاوره پرې تخته کېږي.

**دمگر** (damgár) ص. نر.م. ۱) اوده کوونکی؛ ۲) هغه څوک چې د پښې بنې وهي.

**دمگی** (damagáy) ښځ.م. چغې، جز بازی، د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

**دمل** (dumál) نر.م. سنجه، ښنځه، دنبل، یو ډول دانه ده چې پر وجود باندې راخېژي.

**دملاغاښی** (damlāǵāsay) نر.م. د ملا د تیر بند، د ملا هډوکی، د ملا غوړگی، د ملا مرۍ.

**دملی** (damláy) ښځ.م. و گ. دمړی.

**دمو** (damū́) نر.م. د دوو سیندونو د یو ځای کېدو ځای.

**دمول** (damawál) مص. مت. ۱) اوده کول، چف کول، دم کول؛ ۲) وریجو ته دم ورکول؛ ۳) مج. تر تاثیر لاندې واقع کول.

**دموي** (damawí) ص. نب. د وینې، خوني.

**دمه** (dáma) ښځ.م. ۱) سیاله، ارام، ساسازونه؛ ۲) سا، نفس؛ ۳) ښځ.م. اروی بدېدنه، هاضمه خرابېدنه؛ ٤) بخار، لړه.

**دمهار** (damahā́r) نر.م. غرومبهار، درومبهار.

**دمه ځای** (damaǰā́y) نر.م. دسیالې ځای، د دمې ځای، د استراحت ځای.

**دمه گیر** (damagī́r) ص. نر.م. ج. دمه کوونکی، سیاله کوونکی، ددمې خاوند.

**دمه لوی** (damalóy) ص. نر.م. هوسا، ارام.

**دمېدل** (damedál) مص. مت. ۱) ارامېدل، غلی کېدل، مستریح کېدل؛ ۲) دم کېدل، ددم لاندې کېدل؛ ۳) دم خوړل (پلو، چای...) پخېدل.

**دمیرې زوی** (damayrezóy) نر.م. د میرې مور زوی، ناسکه ورور، میرنی (مورنی) ورور.

**د مېلمانه سترگه** (damelmānastárga) ښځ.م. د ماښام ستوری، د ماښام سترگه، زهره.

**دن** (dan) نر.م. مټ، متی، خُم، چاټی، ماټی.

**دنامه غوټه** (danāmaǵū́ta) ښځ.م. د نامه گنډه، دنامه غوټی، د نوم سر، د نامه سر.

**دناو** (danā́w) نر.م. داناو، هغه اوبه چې غنمو ته په وروستي وخت کې ورکول کېږي.

**دنبوره** (danbūrá) ښځ.م. و گ. تمبوره.

**دنبی** (danbáy) ښځ.م. چغی، چیتی، دماشومانو یو ډول لوبه ده.

**دندارو** (dandārū́) نر.م. یو ډول دانه ده چې د ماشومانو په سر کې راخېژي.

**دنداسه** (dandāsá) ښځ.م. د غوز د ونې پوست؛ ښځې د دنداسې څخه د لبسرین او د غاښو د کریم کار اخلي.

**دندانه** (dandāná) ښځ.م. (ج. دندانې) ۱) اره، مورگه، غاښی؛ ۲) هغه ستنې چې د انگورو تاکونو ته ورکول کېږي؛ ٤) پاټکی، زینه، پوړۍ؛ ٥) څرویی.

**دندکند** (dandkánd) نر.م. د پیل هډوکی.

**دندوړه** (dandū́ṛa) ښځ.م. نینې شوي جینجر.

**دندوکار** (dandūkā́r) نر.م. ۱) تیاره، تورتم؛ ۲) د دوړو ډکه وریځ؛ ۳) درب، دربهار.

**دنده** (dandá) ښځ.م ۱) ساعت تېرول؛ ۲) وظیفه، پېشه، کار؛ ۳) عیش، ښه ژوند تېرونه.

**دنده یي** (dandayí) ص. دنده ییز، ورهنیز، کسبي، وظیفوي، مسلکي، حرفه یي.

**د نس برځی** (danasbrǎǰe) ښځ.م. د نس پریسم، پرین، د نس پردې.

**د نس بنی** (dənásbanáy) ښځ.م. د تنستې د اوبدلو تارونه، د کنې د اودلو تارونه.

**د نس ترخوله ایله** (dənástarxwlailá) ص. ۱) نس پستی، چیږن، سیرن؛ ۲) اروی بد.

**د نس ناسته** (dənasnasta) ښځ.م. لـه نسه بهېدنه، دست، اسهال، له نسه کېدنه.

**دنکریزو شپه** (dənakrizūšpá) ښځ.م. له واده څخه یوه شپـه مخکې هغه رسم چې د هلک او جینۍ په لاسونو نکریزې اینبودل کېږي.

**دنګ** (dang) ص. نر.م. ج. ۱) لـوړ، جـګ، د لوړې ونې خاوند؛ ۲) مست، نشه؛ ۳) نر.م. د شولو د پاکولو پایکو.

**دنګ دنګ** (dáŋgdáŋg) نر.ج. رپېدنه، لړزېدنه، دګېدنه، رېږدېدنه، له سړو او یخنۍ تربدنه.

**دنګرا** (dangrā́) ښځ.م. د نـرګس په څېر یو ډول بوټی دی چې په اوبو کې شین کېږي.

**دنګ غاړی** (danggā́ray) ص. نـر.م. د جـګې او لوړې غاړې خاوند.

**دنګل** (dangə́l) مص.ل. دانګل، ورتل، خېزوهل.

**دنګله** (dangalá) ښځ.م. (ج. دنګلې) ۱) دعوه، مناقشه، شخړه؛ ۲) غوړې پرې.

**دنګو** (dangū́) نـر.م. بې لـه سـرو کـولـو څخه د حبوباتو پخول.

**دنګوچی** (danguçáy) ښځ.م. نګوښېده، ګـوډ ګوډ تلنه، د ګوډ سړي تګ.

**دنګول** (dangawə́l) مص.مت. ۱) دانګول، پورته پورته غورځول؛ ۲) د ماشومانو نازول؛ ۳) مج. غورځول، لېږې کـول، ایسته کـول، له مقامـه لېږې کول.

**دنګه** (dánga) ښځ.م. ۱) ګڼه ګونه، ازدحـام، جم و جوش؛ ۲) د میزرو بوټی؛ ۲) شخړه، لانجه.

**دنګه دنګه چي** (dángadángačí) ښځ.م. د ماشوم دنګونه، د ماشوم ښکته پورته غورځونه

**دنګېدل** (dangedə́l) مص.ل. ۱) پورته پورته غورځېدل؛ ۲) مج. غورځېدل، له مقامه ایسته کېدل.

**دننوال** (dananwā́l) ص. دننپال، درونګرا، تلوینی.

**دننه وال** (dananwālā́) ا. دننپاله، دننپالنه.

**دننه** (danána) ص.نب. ۱) داخـل، په کې، د بهر ضد؛ ۲) ننوتی، ورکې.

**دننی** (dənə́nay) ص.نر.م. ۱) داخلي، اندروني، ددننه؛ ۲) دنن ورځې، ورځنی، په نن مربوط.

**دنه** (daná) ښځ.م. ۱) امېل، طـوق، غـاړه کۍ؛ د ښځې د غاړې یو ډول ګاڼه؛ ۲). و.ګ. دانه.

**دني** (daní) ص.نب. دون، پست، بې کفایت.

**دنیا** (dunyā́) ښځ.م. ۱) نړۍ، جهـان؛ ۲) دارایي، شته، شتمني.

**دنیاپرست** (dunyāparást) ص.نر.م. هغه څوک چې له پیسو او مال سره زیاته مینه لري.

**دنیادار** (dunyādā́r) ص.نر.م. شتمن، دولتمند، د شتو خاوند، ثروتمند، پیسه دار، موړ، بډای.

**دنیاوال** (dunyāwā́l) ص.نر.م.ج. ۱) نړیوال؛ ۲) جهاني، د دنیا.

**دنیاوي** (dunyāwí) ص.نب. دنیوي، د دنیـا، د نړۍ، د جهان، په دنیا پورې اړوند.

**دڼ دڼ** (dáṇdaṇ) نر.م. چوغکه، کونټواله، چرچنه.

**دڼکار** (daṇkā́r) نر.م. تنهاکار، یـو ډول تریخ بوټی دی چې د زخمو لپاره دوا ده.

**دڼیا** (daṇyā́) ښځ.م. دڼیه، کروشه، ګشنیز.

**دو** (۱) (daw) ۱) داو، زیاتونه، جګونه، داوطلبي؛ ۲) خړ، خجل، شرمنده؛ ۳) منده، څغاسته.

**دو** (۲) (du) ښځ.م. ځوروونه، کړونه، دو کول.

**دو**[۲] (do) ښځ.م. دوګی، د سپنبتو یو ډول لوبه ده.

**دواب** (duā́b) نر.م. ددوو دریابونو ترمنځ ځای.

**دوا** (dawā́) ښځ.م. (ج. دواګانې، دواوې) دارو، درمل، دوايي.

**دواپړ** (dawāpáṛ) ص. نر.م. ۱) دعاکوونکی، دعاګوی؛ ۲) فاتحه ورکوونکی.

**دوات** (diwā́t) نر.م. مشوانۍ، هغه بوتل چې د قلم، دروې، نوکاینې رنګ په کې وي.

**دواره** (dawā́ra) ق. له تکه، ناڅاپه، سمدلاسه، فی الحاله، وار د واره، وار له واره، فوراً.

**دواړه** (dwā́ṛa) ص. نب. غبرګ، جفت، جوړه.

**دواله** (dwā́la) ا. دوه واله، دوواله.

**دوام** (dawā́m) نر.م. پایښت، ادامه، ثبات.

**دوامداره** (dawāmdā́ra) ص. نب. پایداره، پایښت لرونکی، ټینګ، کلک، محکم.

**دواوړې چینجی** (dawāwrečinjáy) نر.م. زنګاله، یو ډول چینجی دی چې په زړه واوره کې پیدا کېږي.

**دوايي** (dawāyí) ښځ.م. دوا، درمل، دارو.

**دوب** (dub) نر.م. دوپ، د په هوا، بخار، ګرمي.

**دوباجه** (dūbājá) ص.نب. دوه چنده، دوه ځلي.

**دوباره** (dubārá) ق. ۱) بیا. دوهم ځل، دوه ځلي؛ ۲) ص. خسکي چرګ یا چرګوړی.

**دوباړی** (dubāṛay) نر.م. خوباړی، دبی، د کالو مینځلو لښتاو پلن لرګی.

**دوبټه** (dubaṭá) ښځ.م. جوړته، دوپټه، څادر، هغه څادر چې نارینه یې پر اوږو اچوي.

**دوبجن** (dūbján) ص.نر.م. ۱) دربجن، دوپجن، بدبویه، هغه خواړه چې خراب شي؛ ۲) بند، دپ.

**دوبره** (dubará) ص.نب. لوی یری، دوه سوری توکر.

**ډوبګنی** (dobganáy) ص. نر.م. د دوبي، د اوړي.

**دوبګوړی** (dūbgóṛay) نر.م. بانډه، اېلبند، ایلاق.

**دوبله** (doblá,e) ص. نب. (هن.) دب، ډبین، ډوبله، د متحرک فلم له اواز سره هممهاله د اصلي ژبې پر ځای د یوې بلې ژبې د ترجمې شاملونه.

**دوبندي** (dubandí) ښځ.م. ۱) بند، پیوند؛ ۲) طوق، امېل.

**دوبنی** (dobanáy) ص.نر.م. د دوبی، د اوړي.

**دوبنه** (dobána) ښځ.م. دوبی، د دوبي ښځه.

**دوبول** (doból) نر.م. دوه بول، دوه پښې لرونکی.

**دوبی** (dóbay) نر.م. و ګ. اوړی.

**دوبي** (dubí) نر.م. (ج. دوبیان) کالي مینځونکی.

**دوبیاری** (dubyāráy) نر.م. یو ډول بابنه ده.

**دوبي خانه** (dūbixānā́) ښځ.م. هغه ځای چې دوبیان کالي په کې مینځي.

**دوبیتي** (dubaytí) ښځ.م. (اد.) یو ډول نظم دی چې دوه بیته یا څلور مسرې لري.

**دوبېل** (dubél) نر.م. ۱) وره ببله، وړوکی تپاپو؛ ۲) د دوو سیندونو د یو ځای کېدو ځای.

**دوپ** (dup) نر.م ۱.) دوب، دپ، د په هوا.

**دوپال** (dupā́l) نر.م. هغه لوی کمر چې چینه ترې راوتلې وي.

**دوپتی** (dūpatáy) ښځ.م. مقوا، دپتی، وقایه، د کتاب کلکه او نری پښتي.

**دوپټ** (dūpáṭ) ص.نر.م. دوه چنده، دوه برابره.

**دوپټه** (dūpaṭá) ښځ.م. ۱) و ګ. دوبټه؛ ۲) ص. دوه پاټکیزه، دوه پله بیزه پوړی.

**دوپړ** (dūpáṛ) نر.م. ۱) کړاک، مصیبت، پرېشاني؛ ۲) ستړیا؛ ۳) ص. نر.م. دروهلی، ټګ، چلباز.

**دوپره** (dū́pra) ښځ.م. دوکړه، دوپړی، تبله، طبله، تبلی د موسیقي یوه ضربي آله ده.

دوپړی (dūpṛáy) ښځ.م. و ګ. دوکړه او تبله.
دوپړي (dūpṛí) ښځ.م. پرېشاني، خواري.
دوپن (dūpán) نر.م. څیتی، چوتی، چونی.
دوپوړه (dūpūṛá) ص. نب. ۱) دوه پوړېز، دوه منزله؛ ۲) دوه ځله، دوه واره.
دوپه (dopá) ص. نب. ۱) ډوپه، دروهلی، تنګ؛ ۲) بېوسه، غریب، سربېاګه، بې اعتباره.
دوپه دوپیا (dūpadupyā́) ښځ.م. دوپ، دپه هوا، بنده هوا.
دوپیازه (dūpyāzá) نر.م. یو ډول خواړه دي.
دوتاره (dutārá) ښځ.م. (مو.) د موسیقي یوه آله ده چې تنبورته زیاته ورته ده.
دوترتوکي (dáwtartóki) ا. لیکتوکي، لیک اوزار، دفترې اړتیاوې، قرطاسیه.
دوترواکي (dawtarwā́ki) ا. دفترداري، اداره، بیروکراسي.
دوتنه (dawtána) ښځ.م. پوښ، جلد (د کتاب)، وقایه، دوسیه.
دوتنیار (dawtanyā́r) نر.م. صحاف، هغه څوک چې کتابونه ګنډي، پوښونه ورکوي.
دوتنیز (dawtaníz) ص. پوښل شوی، پوښلی، پوښ ورکړی، مجلد.
دوجاله (dujā́la) ص. نب. دوه زړی، دودلی، فکرجن، مشوش متردد.
دوچار (dučā́r) ص. نر. م. ج. اخته، لګیا، بوخت.
دوچه (dúča) ښځ.م ۱) ورکوټی ډنډ، وړوکی حوض ۲) ډیچه، دویچه، جویه، لښتی.
دوڅار (ducā́r) ص.نر.م. ج. ۱) څرګند، ښکاره، جوت؛ ۲) متوجه، څارونکی، تعقیبوونکی.
دوڅرخه (ducarxá) ا. لاړېس، یوه کښی، یکی، سایکل.

دوختنی (dawaxtanáy) نر.م. پخوا، د مخه، وړاندې، لرغون، ړومبی، مخکې.
دوخته (dawáxta) ق. ړومبی، وخته، پخوا، دمخه.
دوخړه (dūxáṛa) ښځ.م. لوخړه، لوګی، دود.
دود [(۱)] (dūd) نر.م ۱) دو ګ، لوګی؛ ۲) جار، قربان.
دود [(۲)] (dod) نر.م. (ج. دودونه) ۱) رواج، رسم، دستور؛ ۲) هڅوب، کلتور، کلچر؛ ۳) ق. په ډول، په څېر، په شان، غوندې.
دودبایده (dudbāydá) نر.م. سیالي، رواج، د خپښی مناسبات، د دوستی اړیکې.
دودتیا (dodtyā́) ا. دودوالی، رواجېدل.
دودجن (dudján) ص.نر.م. دودبویه، هغه څه چې د لوګي خوند یې اخیستی وي.
دودکادود (dūdkādū́d) نر.م. لوخړه، ګڼ دود، خوړسکه، غړوسکه.
دودکښ (dūdkáṣ) نر.م. دود کش، د لوګي د وتلو موری.
دودکه (dūdáka) ښځ. م. یو ډول نبات دی.
دودل (dudál) نر.م. دل شوی، تکول شوی.
دودو (dawdáw) ق. ۱) په منډه منډه، تېز تېز، په ځغاسته؛ ۲) مج. خجالت، خېږې.
دودوال (dodwā́l) ص. دودپال، عنعنه پال.
دودواله (dodwālá) ا. و ګ. : دودتیا.
دودودوی (dod-o-dóy) ا. دود او قانون، قاعده او قانون، عرف او قانون.
دودول [(۱)] (dodawā́l) مص. مت. رواجول، عامول.
دودول [(۲)] (dūdawā́l) مص. مت. ۱) لوګی کول، لوګی ترې ایستل، سوځل؛ ۲) مج. قربانول، جارول، ځارول، صدقه کول.
دودولی (dodawə́lay) نر.م. ۱) ځورولی؛ ۲) عصبي کړی، په عذاب کړی، قهرولی.

**دوده** (dūdá) ښځ.م. ۱) تښت، هغه تاویز چې ناروغ ته لوګی کېږي؛ ۲) هغه لرګی چې لمبه نه کوي او نرى نرى دود ورنه پورته کېږي.

**دودي**(۱) (dūdí) ښځ.م. باړ، اړوب، هغه اوړه چې لومړى په اوبو کې حلېږي او بیا د ښوروا د ټینګولو لپاره ښوروا ته ورا چول کېږي.

**دودي**(۲) (dawdí) ص.نب. ۱) ګټور، مفید، د ګټې وړ؛ ۲) ګټه خوښوونکی یا غوښتونکی.

**دودیال** (dodyā́l) ص. و ګ. دودیالی.

**دودیالتوب** (dodyāltób) ا. فرهنګیالتوب، دودیالی.

**دودیالی** (dodyāláy) ص.نر.م. په دود او دستور پوه، درونخویه، فرهنګیال.

**دودېدل**(۱) (dodedál) مص.ل. رواجېدل، عامېدل، عام کېدل، تعمیم موندل.

**دودېدل**(۲) (dudedál) مص. ل. ۱) لوګی کېدل، سوځېدل؛ ۲) مج. صدقه کېدل، ځارېدل.

**دودېرشیزه** (duderšizá) ص. ښځ.م. (مو.) د لوېدیزې موسیقۍ په نوټیشن کې یوه نښه ده.

**دودیز** (dodíz) ا.ص. دود شوی، مروج، عنعنوي.

**دور**(۱) (dur) ص. نر.م. و ګ. دوړ.

**دور**(۲) (dáwar) نر.م. ۱) دوران، حرکت، څرخېدنه؛ ۲) وخت، دبدبه، پرتم؛ ۳) د کوهي یو دېوال؛ ٤) عصر، زمان؛ ٥) سپ. وار، نوبت.

**دوران** (dawrā́n) نر.م. ۱) ګردش، څرخېدنه، دور؛ ۲) جریان؛ ۳) وخت، موقع، عصر؛ ٤) مج. قدرت، عزت، پرتم.

**دورانديش** (dūrandéš) ص. نر.م. پېش بين، پای وین، پای وینی، عاقبت اندېش، محتاط.

**دوراني** (dawrāní) ص. نب. متحرک، په حرکت کې، په جریان کې، د دوران.

**دورايي** (durāyí) ښځ.م. ۱) دوراهي، دوه لارې؛ ۲) ق. دوه جاله، دوه زړی.

**دوربه** (dūrbá) ښځ.م. ۱) باراني هفته؛ ۲) دربه، د ژمي د ورځو چې آسمان په وریځو پټ وي.

**دوربين** (dūrbín) نر.م. ۱) لیرې لیدونکی آله؛ ۲) ص. نر.م. ۱) دوراندېشه، عاقبت اندېشه.

**دوردمه** (dūrdáma) ص. نر.م ۱) قوي، غښتلی؛ ۲) دمه، هوسا.

**دورسي** (dūrisí) ښځ.م. تمبه، ټمبه، تماچو، اړم.

**دورګه** (duragá) ص. نب. کم اصل، کچه، بدل.

**دورمال** (dūrmā́l) نر.م. هغه کلک لرګي چې د هغه په وسیله موچنه ښوی کېږي.

**دورمټ** (dūrmaṭ) نر.م. کلکه او درنه آله ده چې اومه ځمکه یا سړک پرې کېمنډي یا یې پرې متېه کوي، ګرمټ.

**دورمه** (dūrmá) ښځ.م (ج. دورمې) نل، نی، درمه، نلۍ، نیچه، کړکی.

**دورنګي** (dūrangí) ښځ.م. دوه مخي، منافقت.

**دورویه** (duroyá) ص. نب. دوه مخی، منافقه.

**دوره** (dawrá) ښځ.م. (ج. دورې) ۱) پېر، ګردش، دور، دوران، ګرځونه؛ ۲) وخت، زمان، عصر؛ ۳) مرحله، پړاو؛ ٤) ژی، څنډه.

**دورې**(۱) (doré) ق. هلته، هاخواته، هورې.

**دورې**(۲) (dúre) ق. ا دې خواته، دېلې، دېخوا.

**دورينه** (dūrína) ښځ.م. وادي، وت، دره، د دوو غرونو ترمنځ سیمه، ناره، شبله، خوړ.

**دورينه خت** (dūrínaxát) نر.م. د کار کوونکې لوبه، د هلکانو او ځوانانو یو ډول لوبه ده.

**دورينه شمال** (dūrinašamā́l) نر.م. یوه لوبه ده.

**دوړ** (dūṛ) ص.نر.م ۱) جولا، اوبدونکی، تغراوبداند؛ ۲) ګرد، ذره، دوړه، لړ شی؛ ۳) دوړن، لاپو.

دوراوو (dūṛāwū́) نر.م. ۱) خوټانکه، هغه پاخه سابه چې بې غوړو له مالگې سره خوړل کېږي؛ ۲) ص. نب. دوړن، لاپو.

دوړدوړکه (dūṛdūṛáka) ښځ.م. بوړبوکی، بړبکی، بوړبړکی، گردباد، گردله.

دوړن (dūṛán) ص. نر.م. دوړاوو، لاپودرواغجن.

دوړول (dūṛawə́l) مص.مت. دمیده شي شندل، رش(پوډر) شیندل، پاشل..

دوړه⁽¹⁾ (dūṛa) ښځ.م. ۱) گرد، غبار؛ ۲) درواغ؛ ۳) لاپه؛ ٤) اوره؛ ٤) کیسی، لغز، چیستان؛ ۵) آشورگ، د غاښو او ستونې یوه دوا.

دوړه⁽²⁾ (doṛá) ښځ.م. ټوکه، مسخره، وشته.

دوړه مار (doṛəmār) ص. نر.م. (ج.دوړه ماران) مسخره چي، ټوکي، ملنډي.

دوړی⁽¹⁾ (dawṛáy) ښځ.م. پیسه، سکه، دینار.

دوړی⁽²⁾ (dūṛáy) ښځ.م. هغه ډوډۍ چې د پخې او رالي (ننول) ډوډۍ پر ځای تیل کېږي.

دوړیت (dūrit) نر.م. ببخایه گرځېدنه، لولنگري.

دوړېدل (dūṛedə́l) مص.ل ۱) پوډر شیندل کېدل، پاشل کېدل؛ ۲) تویېدل، تکېدل؛ ۳) له زړښته شوکېدل (لکه جامې).

دوزخ (dozáx) نر.م. دوژخ، جهنم، دوږخ.

دوژور (dožór) نر.م (حق.) پېژندنه، پېژندگلوي؛ قانوني، قانوني حق، مشروع، ډیجوري.

دوسپنه (dospaná) ښځ.م. زولانه، زنځیر.

دوست (dost) ص. نر.م ۱) ملگری، اشنا، انډیوال ۲) خپل، خپلوان.

دوستانه (dostāná) ص.نب. ۱) د دوستی، د صمیمیت؛ ۲) د اشنایی، د خپلوی، د خېښي.

دوسخانه (dūsxāná) ښځ.م. حمبه، کندو، د غلې ساتنځی، امبارخانه.

دوسکونه (dwaskū́na) ص. نب. دوه چاکه، دوه درزه، دوه ترکه.

دوسه (dósa) ښځ.م. زور زیاتی، جبر، ظلم.

دوسی (dosáy) ښځ.م. ۱) چاته مصلحت ورکونه؛ د بل پرضد سره یوکېدل؛ ۲) مج. منافقت.

دوسیه (dosiyá) ښځ.م. (ج. دوسیې) ۱) لوی قطعه یی څېز چې پاڼې ساتل کېږي (دوتنه)؛ ۲) اتهام، تور، کیفیت؛ ۳) ټول هغه اسناد چې د یوې موضوع یا کوم سړي په اړه راغونډ شوې وي.

دوشاله (dušālá) ښځ.م. شال، دوپټه شال، دوبره شال، کشمیري شال، ښځینه شال.

دوشېرلی (dušerláy) نر.م. سېرلی، یشپرلی، دوه کلن پسه، دوه کلن وز.

دوښا (doṣā́) ښځ.م. څوښه، دوشاب، څوښا د انگورو اوبه.

دوښاخه (dušāxá) ښځ.م. ۱) ښاخی، شاخی، سکو؛ ۲) د لینډۍ کښې، د غولکې لاستی.

دوښخې (dūṣaxé) ښځ.ج. لینگتې، د انسان دوه لینگتی، د انسان ښنې.

دوطرفه (dūtarafá) ص. نب. دوه اړخیزه، له دوو خواوو، له دوو اړخو، له دوه پلوه.

دوغونه (dūǧū́na) ض. دغوني، دوغنه، دونه، دغومره، دومره.

دوک (duk) نر.م. ۱) غم، نول، د خپگان؛ ۲) کینه، حسد، رخه؛ ۳) تهدیدونه؛ ٤) د سِل ناروغي؛ ۵) څوښه، د تار یا وړۍ رېشلو او سپنیز یا لرگینه تېره سیخ.

دوک (duwák) ص. نر.م. دوه کلن (څاروی).

دوکال (dūkā́l) نر.م. سوکړه، وچکالي، وچ کال، قحطي.

**دوکان** (dukā́n) نر.م. ۱) هټۍ، هټ، پلورنځی، پلورځی، دکان، مغازه؛ ۲) د مالګې د لاس ته راوړلو او چاڼولو اورغالی.

**دوکانچه** (dukānčá) ښځ.م. ډبه، چوتره، سوپه.

**دوکټې** (dukaṭé) جن. د وریجو میده ګي.

**دوکړه** (dukṛá) ښځ.م. ۱) مو. دوګړه، دوپړه، دوکړې، طبله، دهندي موسیقۍ له آلاتو څخه ده؛ ۲) توکړه، مات شوی دوک؛ ۳) په ماشین کې د پنبو اینښودلو ځای؛ ٤) بې ځایه لوبه؛ ٥) رکاب.

**دوکړه یي** (dukṛayí) ص. نر.م. دوکړې وهونکی، دوپړې وهونکی، تبله یي.

**دوکول**[1] (dawkawə́l) مص. مت. ۱) داوطلبي کول، بیه جګول؛ ۲) بایلل؛ ۳) ځارول، جارول؛ ٤) شرمول، دوول، خړول، خجلول.

**دوکول**[2] (dukawə́l) مص. مت. ۱) توکل کول، اراده کول؛ ۲) غمول، کړول، تنګول، ځورول.

**دوکه** (doká) ښځ.م. (ج. دوکې) غولونه، ختا ایستنه، چل، چل ول، تګي، تېر ایستنه.

**دوکه مار** (dokamā́r) ص. نر.م. چمباز، چلباز، دروهلی، غولوونکی، تګ، تېرایستونکی.

**دوکی** (dū́kay) نر.م. څرخکی، څرخی، ورکوټی دوک، د دوک تصغیر.

**دوکېدل**[1] (dukedə́l) مص.ل ۱) غمېدل، کړېدل، ځورېدل؛ ۲) سمېدل، لاري ته برابرېدل.

**دوکېدل**[2] (dawkedə́l) مص.ل. ۱) داوطلبي کېدل، بیه جګېدل؛ ۲) ځارېدل، جارېدل؛ ۳) شرمېدل، خړېدل، خجلېدل.

**دوګ** (dug) نر.م. ۱) دود، لوګی؛ ۲) قهر، غوسه، خوشکه؛ ۳) درد، خوږ.

**دوګانه** (dūgānā́) ښځ.م. ۱) د انګورو هغه تاک چې جرړې یې کړې وي؛ ۲) ص. نب. جوت، غبرګ، غبرګونی، جوړه یي.

**دوګړ** (dūgáṛ) نر.م. ګرد، ګړد، لړ، کم، نوکی.

**دوګزه** (dūgazá) ښځ.م. هغه جال چې په دوو څنډو کې یې لرګي وي او د مرزانو یا کوترو د سپل نیولو لپاره په کارېږي.

**دوګغړن** (dūggǎṛán) ص. نر.م. ۱) دودغړن، دودجن؛ ۲) لوغړن، لغوړن، ناولی، چټل.

**دوګول** (dugawə́l) مص. مت. ۱) غړول، بړغول، څوک په خبرو راوستل؛ ۲) دودول.

**دوګی** (dūgáy) نر.م. (ج. دوګي) لوګی، دود.

**دوګی** (dogáy) ښځ.م. د سپینتوب یو ډول لوبه ده.

**دوګېدل** (dugedə́l) مص.ل. ۱) غړېدل، ورو ورو په خبرو راتلل؛ ۲) دودېدل، لوګی کېدل.

**دولا** (dulā́) ص. نب. ۱) غبرګ، دوه پټی، دوه قلی، دوه کته شوی؛ ۲) کوږ، خم، کوږ، تېټ.

**دولاغ** (dulā́ğ) ښځ.ج. دولاق، یو ډول پراخ، چین لرونکی ښځینه پرتوګ دی.

**دولت** (dawlát) نر.م(ج. دول، دولتونه) ۱) شته، مال، سرمایه؛ ۲) هېواد؛ ۳) د ملت او حکومت مجموعي هیأت.

**دولتمن** (dawlatmán) ص.نر.م. دولتمند، موړ، بډای، شتمن؛ د مال او دولت خاوند.

**دولتي** (dawlatí) ص. نب. د دولت، په دولت پورې تړلی، سرکاري، رسمي.

**دولتی** (dulatáy) ښځ.م. لغتي، جوتکي، لګتي.

**دولکوټ** (dulkóṭ) نر.م. د قصابۍ مارکېټ.

**دولوزه** (dulawzá) ص.نب. بې قوله، بې وعدې.

**دوله** (dūlá) ښځ.م. ۱) غړانګه، د سپي یا سورلنډي انګولا، دولی؛ ۲) چودني کوزه، دا وسپنې ګډوه.

**دومبره** (dū́mbra) ق. ۱) وګ. دومره؛ ۲) ص. دېر پرسېدلی، بې اندازې چاغ.

**دومره** (dū́mra) ق. دونه، دونې، دغونې، دغومره، په دې اندازه، په دې مقدار، دا اندازه.

**دومره کی** (dū́mrakáy) ق. نوکی، دونه نوکی، دېر لږ، لږ ځېز، بېخي لږ، د دومره تصغیر.

**دومنده** (dawmandá) ښځ.م. څلور بولی، بوده، څاروی.

**دومه** [1] (domá) ښځ.م. مړ اور، خوګلن، کمزوری اور، غلی اور.

**دومه** [2] (dū́ma) ښځ.م. لومه، دام.

**دومی** (dū́may) نر.م. ۱) پېچومی، لوړ ځای، جګ ځای، اوچت ځای؛ ۲) دومه، ساړه وهل، زکام، والګی.

**دون** (dun) نر.م. (مو.) ۱) دهن، وګ. تومسري؛ ۲) د ګورو یا لوړې هجا له نومو څخه یو نوم.

**د ناسري** (dánāsurí) ښځ.م. ۱) د سري راګ یوه شعبه یا راګني ده؛ ۲) د مېګ راګ یوه څانګه؛ ۳) د مالکوس راګ یوه څانګه یا بارجا.

**دوند** (dund) نر.م. لړه، تیاره، غبار، دمه.

**دونکاچه** (dūnkáčá) ښځ.م. وګ. دوهی.

**دونی** (dunáy) ښځ.م. دهه، دوهی، دونی.

**دوني** (dūní) ص. نر.م. ۱) رذیل، پست، بې همته؛ ۲) مفعول، خراب.

**دوني** (doní) نر.م. مو. وګ. دوني.

**دونې مور** (dawánemór) ښځ.م. یو ډول حشره ده چې په ونو کې پیدا کېږي.

**دوڼ** (duṇ) نر.م. دوړه، غبار، ګرد، دوړې.

**دوڼه** (dóṇa) ښځ.م. دوړه، توکه، مسخره، ملنډه.

**دوڼی** [1] (dawṇáy) ښځ.م. ۱) چادري، بوغره، بورکه، برقع؛ ۲) لږې پیسې، پیسه، سکه.

**دوڼی** [2] (dūṇáy) ښځ.م. ۱) د شیدو پخولو لوښی؛ ۲) دکی، د شیدو د لوشلو لوښی؛ ۲) د ښځو یو ډول ګانه ده.

**دوڼي** (doṇí) نر.م. مو. یو اته سره لرونکی مقام دی چې سوني هم ورته وایي.

**دووس** (dawū́s) ص. نر.م. متیز، دله، بوری، دیوث بې غیرته، بې ننګه، پست، رذیل؛ څوک چې پر خپله کورنۍ ننګ نه کوي.

**دوول** (dowál) نر.م. سګ ماهي.

**دوه اړخیز** (dwaarxíz) ص.نر.م.ج. دوه خوابیز، دوه پلویز، دوه مخیز، د دوو پلوو، دوجانبه.

**دوهان** (duhā́n) نر.م. اور.

**دوه برغه** (dwabráğa) ص. نب. دوه غبرګه، دوه کته، دوه تاییز.

**دوه بول** (dwaból) نر.م. انسان، بنیادم، بشر.

**دوه بی** (dwabáy) نر.م. دوه منده، دوه اوبه؛ هغه ځای چې د دوو خوړونو اوبه سره یو ځای کېږي.

**دوه پټی** (dwapáṭay) ص. ښځ.م. ۱) دوه بره، دوه سوری؛ ۲) هغه ونه چې دوه پټه ولري.

**دوه پټیز** (dwapaṭíz) ص. نر.م. ۱) دوه پله بیز ور؛ ۲) دوه پټی.

**دوه پسوری** (dwapsóray) ص. نر.م. دوه بری، دوبره، دوه سوری، دوه بره.

**دوه پوړه** (dwapúṛá) ص. نب. دوه پوښښنبه، دوه پوړیز، دوه چته، دوه منزله.

**دوه پر دوه** (dwápardwá) ق. یوازې دوه، فقط دوه، دوه تنه.

**دوه چنده** (dwáčánda) ص. نب. دوه ګرایه، دوه برابره، دوه واري، دوه ګوني، دوه دونه.

**دوه ځایه** (dwájāya) ص. نب. دوې برخې، نیم نیمايي.

**دوه خلې** (dwaxále) ښځ.م. دوه خاښې سکو.

**دوه خولې** (dwaxóle) ښځ.م. یو ډول گنډون.

**دوه زړه** (dwázṛa) ص. نب. دوه زړی، زړه نا زړه، متردد.

**دوه ژبی** (dwažə́bay) ص. نر.م. دوه قوله، منافق، درواغجن، دروغژن.

**دوه ژواکی** (dwažwā́kay) ص. نـر.م. د دوو ژوندو خاوند، دوه ژوندی، ذوحیاتین.

**دوه ساه ژوند** (dwasā̆žwánd) ا. دوه دومی یا دوه نفسی ژوند.

**دوه سکلی** (dwaskálay) نر.م. دوه کلن اوښ.

**دوه غبرگه** (dwağbárga) ص. نب. دوه برغـه، دوکاته، دوه قطه، دوه بره، دوه تاییز.

**دوه غښی** (dwağaṣáy) ص. نـر.م. د داړی، دوه ډړی، د دوو کلونو څاروی.

**دوه گرای** (dwagrā́y) نـر.م. دوه قـدمـه، یو په دوه؛ عس. د پلیو لپاره د موزون قدم قومانده.

**دوه گرایه** (dwagrā́ya) ا. ص. دوه برابـره، دوه هومره، دوه چنده.

**دوه گړده** (dwagə́ṛda) ښځ.م. بوره، هغې ښځې چې ماشوم یې په ځلوېښتي کې مړ شي.

**دوه گوری** (dwagóray) ص. نـر.م. چنگار، بینگا، کوږسترگی.

**دوه گون** (dwagū́n) نـر.م. ۱) دوه گیـز، دویي، د دوونوټې؛ ۲) ص. نر.م. دوه تـوله، دوه چـنده؛ ۳) غبرگ.

**دوه گی** (dwagə́y) ښځ.م. مهتر، میرگـاتی، دگاتو په لوبو کې یوه اصطلاح ده.

**دوه لارې** (dwalā́re) ښځ.م. دوراهي، دورایي.

**دوه لاسی** (dwalā́say) ص.نر.م. د دوو لاسونو، په دوو لاسونو، دوه لاستی.

**دوهم بریدمن** (dwahámbridmán) نـر.م. د عسکري منصب دوهمه ټیټه رتبه چې د ملکي مامورینو له نهمې رتبې سره برابره ده.

**دوهم څارن** (dwahámcārán) نر.م. د پولیسو په تشکیل کې یوه رتبه ده چې د عسکـری په تشکیل کې له دوهم بریدمن او په ملکي تشکیل کې له۹ رتبې سره برابره ده.

**دوه مخی** (dwamáxay) ص. نر.م. منافق، دورویه.

**دوه مخي** (dwamaxí) ښځ. م. ۱) دوه والی، منافقت، دوه رنگي؛ ۲) ریاکاري.

**دوه میره** (dwaméra) ص. ښځ. م. ۱) دوه کتاره، دوه قطاري؛ ۲) دوه واریزه، د دوو ځلو.

**دوه میریزه** (dwameríza) ص. ښځ.م. هغه ښځه چې دوهم ځل یې میره کړی وي.

**دوه نلیز** (dwanalíz) ص. نر.م. ۱) د دوو نلو، د دوو شپېلیو؛ ۲) نر.م. دومیله ټوپک.

**دوه نیمه** (dwaníma) ص. نب. و.گ. دوه ځایه.

**دوه واریز** (dwawā́ríz) ق. د دوه وارو، تکراري، مکرر، دوه واري، بیا بیا، دوه ځلي.

**دوه والی** (dwawā́lay) نر.م. دوه مخي، منافقت، دوه رنگي.

**دوه ورگی** (dwawárgay) نر.م. دوه کلن اوښ.

**دوهی** (dūháy) ښځ.م. ۱) دوهه، دونښی، دونهی، د ملنگانو هستوگنځی؛ ۲) د اور هغه سکروټې چې د جوگـیانو مخې ته پرتې وي.

**دوه ییز** (dwayíz) ص. نر.م. ج. ۱) جفت، جوړه، غبرگ؛ ۲) اد. دوه ییزه، مثنوي.

**دوی** (dūy) ض. اشاري ضمیر دی چې دغه او دا د جمعې لپاره راځي.

**دوې** (dawé) نر.م. قانون، روش، دود، دستور، رواج.

**دويچه** (dūyičá) ښځ.م. ۱) ډيچه، دوپچه، دپالېز جويه؛ ۲) د څاه په څنګ کې وړوکی ډنډوکی.

**دويزي** (dawizí) ښځ.م. دووسي، بې غيرتي.

**دويستي** (dawistí) ښځ.م. اينګې، هغو ښځو چې له ناوې سره د پلار له کوره د هلک کره ځي.

**دويل** (duyíl) نر.م. تن په تن جګړه.

**دويم زېږ** (dwaymzéẕ) ا. دويم زېږون، دويم توليد (پغويه).

**دويمه** (dwaymá) ا. دوه، يکشنبه، اتوار.

**دويمه خج** (dwaymáxaj) ا. دويم خج، دويم فشار.

**دويي** (duyí) ښځ.م. ۱) دوه ګون نوټ؛ ۲) بې اتفاقي، نفاق، تفرقه.

**دويېز** (doyíz) ص. قانوني، له قانون سره سم.

**دويېزه** (doyíza) ا. دوه بيتي، مثنوي.

**ده**[1] (da) ض. ۱) د غايب مفرد ضمير دی؛ ۲) ف. د فعلي ربط مفرده مؤنثه کليمه ده.

**ده**[2] (dih) ښځ.م. ګرام، کلی.

**دها** (dahā́) ښځ.م. ۱) ځيرکي، هوښياري، پوهه؛ ۲) د عاشورا ورځ.

**دهاتي** (dihātí) ص. نب. ۱) کليوالي، دکلي؛ ۲) هغه ښوونځي چې يو ښوونکی لري.

**دهانه** (dahāná) ښځ.م. (ج. دهانې) وګ. دانه.

**دهځ** (dahác) نر.م. جهز، داج، جهيز، کردار.

**دهر** (dáhar) نر.م. روزګار، عصر، زمان، پېړۍ.

**دهري** (dahrí) ص. نب. دهريه، ملحد، بې دينه؛ څوک چې زمانې ازلي ګڼي.

**دهړه** (dahṛá) ښځ.م. (ج. دهړې) ۱) داړه، غدۍ؛ ۲) باټ، نوزی، تېشه ماله، بيلو، چړکانی.

**دهشت** (dahšát) نر.م. ۱) وېره، ترهه، وهم، ډار؛ ۲) فتنه.

**دهقان** (dihqā́n) نر.م. بزګر، ښکاروز، کروندګر.

**دهلول** (dahlawə́l) مص. مت. ډارول، بېرول.

**دهلېدل** (dahledə́l) مص. ل. ترهېدل، ډارېدل.

**دهلېز** (dahléz) نر.م. کفشکن، د کوټو ترمنځ هغه پوښل شوی ځای.

**دهنه** (dahná) ښځ.م. (ج. دهنې) وګ. دانه.

**دهواانګی** (dahawāangə́y) ښځ.م. يو ډول لوبه ده.

**دهور** (dahū́r) ص. نر.م. جولا، اوبدونکی.

**دهه** (dahá) ص. نب. لسمه، لسيزه، لس کلنه دوره.

**دهير** (dahír) نر.م. ببلتون، جدايي، هجران.

**دی** (day) ض. ۱) د مفرد غايب اشاري ضمير؛ ۲) نر.م. (ج. دي) دی، د فعلي ربط مفرده کليمه ده چې د نارينه لپاره استعمالېږي.

**دې** (de) ض. ۱) دمفرد غايب ښځينه اشاري ضمير؛ ۲) ښځ.م. مو. په رسم الخط کې د دا، يا دها تېور سُر.

**دي** (di) نر.م. مو. د تبلې يو اواز دی.

**ديار**[1] (dyā́r) نر.م. سرو، د سروې ونه، د سبر ونه.

**ديار**[2] (diyā́r) نر.م. هېواد، وطن، ملک.

**ديانت** (diyānát) نر.م. ۱) ديانداري، ايمانداري؛ ۲) نيت، زړه، اراده؛ ۳) ملت؛ ٤) مذهب.

**ديبادي** (dibādí) نر.م. مو. هغه سُر چې د راګ د تاکل شويو سُرو په ډله کې شامل نه وي.

**ديپک** (dipák) نر.م. مو. ۱) د پوربي په تاټ اړوند ۲) داته ويشتو ماتروڅخه جوړ شوی يو تال.

**ديتيمانوډله** (dayatimānodála) ښځ.م. د اتو ستورو نوم دی چې د کړی په څېر واقع دي.

**دېچکه** (dečká) ښځ.م. ډچکه، ديکه، تېل وهنه.

**دېخل** (dexál) نر.م. درشايي، درګا، آستانه.

**دېخوا** (dexwā́) ق. دې خواته، دې پلو، دې لوري ته، دلته.

**دید** (did) نر.م. ۱) بینایي، لید، نظر؛ ۲) نخښه، نښه، نښانه.

**دیدوان** (didwā́n) نر.م. ۱) دیدبان، څری، کروال، جری، (وګ. څری۳)؛ ۲) څارو، څاروال.

**دیده** (didá) ښځ.م. ۱) سترګې، کسی؛ ۳) عقل؛ پوهه؛ ٤) مرښت، د یو څه خاوند کېدنه.

**دیر** (dáyar) نر.م. صومعه، دراهبانو دعبادت ځای.

**ډېرپا** (derpā́) ص. نب. پایدار، دوامدار.

**دیرک** (dirák) نر.م. څکېږ، وڅکېږ، سکېږه، د خېمې یا کېږدۍ ستنه (متېه).

**ډېره** (derá) ښځ.م. ۱) اوجره، حجره، جمه د مېلمنو ځای، مېلمستون؛ ۲) مسکون، مېشت، اړونه.

**ډېزدره** (dezdará) ښځ.م. سه بجل، د ببړیو یو ډول قمار دی.

**دیږي باغ** (dayəzibā́ğ) نر.م. وګ. د مرغۍ کنې

**دېږ** (dez) امر. ودرېږه، دریش، د درېدلو قومانده.

**دېس** (des) نر.م. ۱) دېش، هېواد، وطن، دېز، دېس؛ ۲) مو. یو راګ دی.

**دېسکار** (deskā́r) نر.م. مو. دمېګ راګ یوه راګني ده.

**دیسڼکی** (disə́ṇkay) ص. نر.م. وګ. دووس.

**دېسه** (desá) ښځ.م. وېشه، شاه تیر، بش.

**دېسي** (desí) ص. نب. ۱) وطني، ددېس، ددېش؛ ۲) دیسي، کم اصل، بدل، ناچل، کچه؛ ۳) مو. نوي مقامونه یا راګونه د مرګ مقابل.

**دېشین** (dešín) ص. نر.م. استوګن، ځایي، ځای پرځای، په کلي کې اوسېدونکی.

**دیکتاتور** (diktātū́r) ص. نر.م. ډیکتاټور، مطلق العنان، مطلقه حاکم، خودکامه.

**دیکه** (diká) ښځ.م(ج. دیکې) ډکه، تېله، ټنګ، پوري وهنه، تمبونه.

**ډېکۍ** (dekə́y) ښځ.م. شین توپکه، شین توپۍ، شیدوپۍ، یو ډول مرغۍ ده.

**دېګ** (deg) نر.م. دېګی، فلزي لوښی دی چې پخلی په کې کوي.

**دېګبر** (degbár) نر.م. دېګلی، کمکی دېګ.

**دېګچه** (degčá) ښځ.م. ۱) وګ. دېګبر؛ ۲) نذر، یو نذرانه خیرات دی.

**دیګدګو** (digdugó) ښځ.م. په اوبو کې د منډو وهلو یو ډول لوبه ده.

**دېګلی** (degláy) نر.م. دېګچی، ووړکی دېګ.

**دېګوړی** (degū́ṛay) نر.م. جامک، ورکوټی لوښی دی چې د دېګي په څېر جوړ شوی وي.

**دېګي** (degí) ص. نب. پاکه شوې غله.

**دېګي کول** (degikawə́l) مص. مت. غله پاکول، حبوبات او داني پاکول، وریجې پاکول.

**دېله** (delá) ښځ.م. دییله، د پټولس خالۍ.

**دیلې** (dilé) ق. ۱) دلې، دلته؛ ۲) دې خوا.

**دیمه** (daymá) ص. نب. للمي، للمه ځمکه.

**دین**[1] (dayn) نر.م ۱) پیل، شروع، اقدام؛ ۲) پور، هوس، قرض؛ ۲) د ادا کولو وړ کوم څه.

**دین**[2] (din) نر.م(ج. دینونه) ۱) ملت؛ ۲) مذهب؛ ۳) آیین، طریقه؛ ٤) ورع، طاعت.

**دینپال** (dinpā́l) ص. وګ. دیندار.

**دینپالنه** (dinpālə́na) ا. دیندوستي، دیانت پالنه.

**دینپوهنه** (dinpohə́na) ا. دینپوهه، دیني علم، دینیات، الهیات.

**دیندار**[1] (dindā́r) ص.نر.م.ج. دیندوست، پر دین ټینګ، پرهېزګار، متقي.

**دیندار**[2] (dayndā́r) ص.نر.م. پوروړی، قرضدار، پور پر باندې.

**دیندوست** (dindóst) نر.م. وګ. دینپال.

**دينښود** (dinṣód) ص. دين ښوونکی، دېني لارښود، مجتهد.

**دينګ** (ding) ص. نر.م. لک، نېغ، جګ، شخ.

**دينوي** (dinawí) ص.نب. ديني، د دين، په دين پورې اړوند.

**دېوال** (dewā́l) نر.م. ۱) ديوار، هغه څه چې د ختو او خښتو او... څخه جوړ شوی او د کوټې، کلا... څخه را تاو شوي وي؛ ۲) خنډ، حايل.

**دېوال غويک** (dewālǧoyák) نر.م. توردلی، تک توکينی، يو ډول مرغۍ ده.

**دېوالي** (dewālí) ص. نب. ۱) د.دېوال، دېوال پورې اړوند؛ ۲) هغه سوداګر چې خپله شته له لاسه ورکړي او په نتيجه کې تجارتي اعتبار يې له منځه ولاړ شي؛ ۳) خپه، مرور، خوابدی..

**ديوان** (diwā́n) نر.م. ۱) د يوه شاعر د اشعارو جونګ يا مجموعه؛ ۲) و.ګ. دفتر؛ ۳) تخت؛ ٤) محکمه.

**دېوانه** (dewāná) ص. نب. لېونی، پاګل، مجنون.

**دېواني ليک** (dewānilík) نر.م. دفتري، عربي تعليق، يو ډول ليک دی.

**دېوت** (dewát) نر.م. دهيوت، دېوت؛ دشپېږ سُرو (نغمې، آهنګ) د جملې څخه شپږم سُر چې د پنچم او نکهاد ترمنځ دی.

**دېوخويه** (dewxū́ya) ص. دېو لوښی، برمانو، وحشي

**دېوده** (dewdá) نر.ج. ډېده، ډيده، ګنې ډزې.

**ديوګندهار** (diwgandhā́r) نر.م. و.ګ. جوګيا.

**ديوناګري** (diwanāgarí) نر.م. يو ډول ليک دی چې همدا اوس په هند کې رواج لري.

**دېووزمه** (dewwázma) ص. دېو ډوله، دېو خويه.

**ديوه مخه** (dayawamáxa) ق. ببخي، له يوه پلوه، له ځېلمې، تول، له يوه څرمه، د يوه سره.

**ديه** (diyá) ښځ.م. (فق.) ديت، نقدي مجازات.

**دي يز** (diyáz) نر.م. (مو.) د اروپايي موسيقۍ په نوټېشن کې د غسې (#) يوه نخښه ده.



ډ (ḍāl) نر.م. د پښتو الفبې پنځلسم توری، ډال تلفظ کېږي. ابجدي ارزښت یې ٤ دی.

ډاپ (ḍāp) نر.م. ط. ډېپ، ډاب، ډېب: ١) درنگ تاپه؛ ٢) چاپ.

ډاډ (ḍād) نر.م. ١) تسلي، تسکین، اطمینان، زړه پوری؛ ٢) زړورتیا.

ډاډگېرنه (ḍādgeréna) ښځ.م. (ج. ډاډگېرنې) پوراینه، ورنه، ډاډهنه.

ډاډمن (ḍādmán) ص. ډاډه، خواتول، مطمئن.

ډاډمني (ḍādmaní) ا. ډاډ، اطمینان.

ډاډنه (ḍādána) ښځ.م. ډاډ ورکونه، تسلي ورکونه زړه پورتیا، تسلي، ډاډ، اطمینان.

ډاډول (ḍādawə́l) مص.مت. ډاډ ورکول، تسلي ورکول، ډاډگیرنه ورکول.

ډاډه (ḍādá) ص. نب. ١) خاطرجمع، مطمئن، زړه پوره؛ ٢) ډوډه، د جوارو وړي یا شنې اوربشې یا غنم په اور کې پخول؛ ٣) فصل چې په پخېدو راغلی وي؛ ٤) الوېونه، وریتونه، پخونه.

ډاډینه (ḍāḍína) ښځ.م. ډاډهنه، ډاډ ورکونگ.

ډاډېيل (ḍāḍeyə́l) مص. مت. ډاډ ورکول، تسلي ورکول، زړه پوره کول، اطمینان ورکول.

ډار (ḍār) نر.م. بېره، وېره، یېره، ترس، بیم.

ډاراچونه (ḍāračawána) وېره اچونه، بوروئونه، ترهه اچونه، ترهگري.

ډارځپلی (ḍārǰapálay) مف. نر.م. ډارشوی، بېربدلی، وېربدلی، ډاروهلی.

ډارماکو (ḍārmākū́) نر.م. ډیله، ډیلکۍ، یو ډول وابنه دي چې په شولو کې راشنه کېږي.

ډارن (ḍārán) ص. نر.م. بېرندوکی، وېرندوکی، بې زړه، کم زړه، یرندوکی.

ډارول (ḍārawə́l) مص. مت. بېرول، یرول، وېرول، ډورول، ترسول، د یو چا تهدیدول.

**ډاره** (ḍā́ra) ښځ.م. ۱) د دروازې د سر چـجـه، د دروازې د سر پیټک؛ ۲) څپر.

**ډارۍ** (ḍārə́y) ښځ.م. شگیرگینی، ټمبکه، د غلوزو کور، د شاتو د مچیو کور.

**ډاریدل** (ḍāredə́l) مص.ل. ببریدل، وبریدل، تهدیدیدل، ترسیدل.

**ډاکټر** (ḍāktár) نر.م. داکتر، دکتور؛ ډوکتور؛ ۱) طبیب، دناروغانو معالج؛ ۲) هر هغه څوک چې د علـومو په یوه څانگه کې د یـوې ټاکلې موضوع په باب یو تحقیقي اثر ولیکي او د هغه څخه دفاع وکړي.

**ډاکټري** (ḍāktarí) ښځ.م. ۱) درملگري، طبیب، طبابت؛ ۲) وگ. ډوکټورا.

**ډاکوتوب** (ḍākūtób) نـر.م. ډاگ وړنه، پوسته رسونه، ډاگ رسونه.

**ډاکه** (ḍā́ka) ښځ.م. ۱) چپاوشبخون، غدی، داړه ۲) ډاکه، یو ډول نازک ټوکر دی.

**ډاکه مار** (ḍākamā́r) ص. نر.م. ډاکو، داړه مار، چپاو کوونکی، چوروونکی.

**ډاگ** (ḍāg) نر.م. ۱) درمنډاگ، د غنمو د پاکـولو ځای؛ ۲) هوار میدان، ډاک، بیابان، دښـتـه؛ ۳) ډاک، پوسـتـه، پوسـت؛ ٤) ص. نر.م.ج. خراب، وران، ویجاړ.

**ډاگپانه** (ḍāgpā́na) ښځ.م. پوست کارډ.

**ډاگخونه** (ḍāgxū́na) ښځ.م. ډاگخانه، پوسـتـه خانه، د پُست دفتر.

**ډاگول** (ḍāgawə́l) مص. مت ۱) خرابول، ویجاړول، ورانول، له منځه وړل؛ ۲) چورول، لوټول.

**ډاگه** (ḍā́ga) ښځ.م. ۱) د بجلۍ ستن، د چت وسه او گودره، لکړه، خـاده، د ټیلفون متـه؛ ۲) ډاکـه، یو ډول نازک ټوکر دی؛ ۳) اواره او وچه ځمکه.

**ډاگي** (ḍāgí) ص. نـر.م. ۱) لیک رسانډ، پوسته رسـوونکی؛ ۲) چوغلگر، سخن چین، غماز؛ ۳) بچه باز، لوطي؛ ٤) پراخ ټنډی؛ ۵) لگښتي؛ ٦) ص.نب. د ډاگ، میداني؛ ۷) څرگند، اوڅار.

**ډاگۍ** (ḍāgə́y) ښځ.م. وړه صوفه یا سوپه، چوتره، وړه ډبه، کوچنۍ دېوسه.

**ډاگېدل** (ḍāgedə́l) مص.ل. ورانېدل، خرابېدل، ویجاړېدل، بربادیدل، له منځه تلل.

**ډال** (ḍāl) نر.م. ۱) د «ډ» د توري تلفظ؛ ۲) سپر، کنگل.

**ډال باز** (ḍālbā́z) ص. نر.م ۱) کنگل باز، څـوک چې د تورو وهلـو او ډال نیولو په لـوبه کې لاس ولري؛ ۲) دارباز (کندهار).

**ډال غاړی** (ḍālğā́ṛay) ص. نر.م. د ډال خاوند، ډالوال، هغه څوک چې د ډال په استعمالولو کې لوی لاس ولري.

**ډالفین** (ḍālfín) نر.م. ډولفین، دولفین، یونسي کب، یو ډول تیـور غټ کب دی.

**ډال وډیل** (ḍāluḍíl) نـر.م. فېشـن، ډول، ډول ډیل، سینگار، سامانه، سومانه.

**ډالۍ** (ḍālə́y) ښځ.م ۱) سوغات، تحفه، پېشکش؛ ۲) دځارنې مقصد؛ ۳) د څـادر یا لمڅي څنډه؛ ٤) ټالی، د کوچنیانو گردۍ زانگو.

**ډامبوری** (ḍāmbūráy) نر.م. ډموری، ډېری، ډمبوری، امبار، انبار، ډېران.

**ډانډ** (ḍānd) نر.م. ډنډ، دنباتاتو نار، جیلغ، ساقه.

**ډانډټ** (ḍāndə́t) نر.م. ډغلی، ډانډس، د نداف د ډینډاپې آله.

**ډانډسی** (ḍāndasáy) نر.م. ډینډاپ، نداپ، نداف.

**ډانډوری** (ḍāndūráy) نر.م. د پسو او مېږو پړله پسې بغارې.

**ډانډوغ** (ḍānḍūg) ص. نر.م. وروستی، وروستنی، په څټ پاتې، شاته پاتې.

**ډانډوکی** (ḍānḍūkáy) ښځ.م. لامبو، تاری.

**ډانډول** (ḍānḍūl) نر.م. شغله، لمبه، د لمبې برک.

**ډانډولی** (ḍānḍūlə́y) ښځ.م. ډنډولی، ځان ځنګلی، ځان ځولی، څوک چه دواړو پښو او لاسو نیول او زنګول، ځولی کول.

**ډانډولی** (ḍānḍūláy) نر.م. ۱) هغه څوک چې ډانډولی کېږي؛ ۲) ځولی؛ د توت ښنډلو لوی توکر یا څادر.

**ډانډی** (ḍānḍay) نر.م ۱) وګ. ډانډ؛ ۲) وابنکی، دانګورو ونکالی، د انګورو ګونګی، ډنډوری؛ ۳) لنډی کوتک، کوچنی او وچ لنډ لرګی.

**ډانډۍ** (ḍānḍə́y) ښځ.م. ۱) شاهین، د تلې ډنډه؛ ۲) هغه لښه چې لوګی هم ورسره وي؛ ۳) د غوږ لښتۍ؛ ٤) شاتیر، وښه، بش.

**ډانس** (ḍāns) نر.م. (هن.) ۱) نڅا، ګډا، رقص؛ ۲) والس، ټنګو؛ ۳) د نڅا پارټۍ.

**ډانسر** (ḍānsár) ص. نر.م. نڅا کوونکی، رقاص.

**ډانکه** (ḍānká) ښځ.م. د سپرو نغاره، د سپرو دمامه، وګ. دمامه.

**ډانګ** (ḍāng) نر.م. کوتک، لوړ، سوټی، دبی.

**ډانګ پیالی** (ḍāngpeyə́lay) ص. داګیز، څغرد، اوځار، څرګند.

**ډانګ ډبلي** (ḍāngḍabəli) نر.ج. سامان، د کور اسباب، د کور لوښي او کودي.

**ډانګسر** (ḍāngsár) ا. دیناسور، هغه غټ ژوی چې ۶۵ میلیون کاله دمخه د یوکاتان پر ټاپووزمه د یوې اسماني توټې له لوېدو سره له منځه تللی دی.

**ډانګلکی** (ḍānglakə́y) ښځ.م. تورانی، توره بلبله، یوه مرغۍ دی چې اوږده لکۍ لري.

**ډانګو** (ḍāngū́) ص. نر.م. جګ او غټ سړی.

**ډانګوری** (ḍāngorə́y) ښځ.م. د تخرګ امسا.

**ډانګه** (ḍānga) ښځ.م. ۱) ادوم، ښانګه، د کوناټي څخه تر تلې پورې برخه؛ ۲) ستن، متې.

**ډانګی** (ḍāngáy) نر.م. ۱) ګام، قدم؛ ۲) لنډ پنډ لرګی.

**ډانګۍ** (ḍāngə́y) ښځ.م. ټانګو، یو ډول ونه ده.

**ډانګیي** (ḍāngayí) ص. نب ۱) ډانګایي، لوچک، بدماش، جنګره؛ ۲) پوچ کارتوس.

**ډاونی** (ḍāwə́nay) نر.م ۱) داوني، ټیکری، څادر؛ ۲) بوغره، بوکره، برقع، چادري.

**ډاهومي** (ḍāhūmí) نر.م. وګ. داهومي.

**ډایرکټر** (ḍāyriktár) نر.م. ۱) مدیر، رئیس، سمونګر؛ ۲) (هن.) هغه څوک چې د یوه فلم یا نمایشنامې او... اړوندې چارې لارښوونه کوي.

**ډب** (ḍab) نر.م. ۱) د یوه شي د لوېدو اواز؛ ۲) هغه ژورځای چې اوبه په کې ډنډېږي؛ ۳) لویې، برم؛ ٤) تاوان، زیان؛ ٥) ګوزار، وهنه؛ ٦) ص. نر. م.ج. بند، ولاړ، ډنډ؛ ۷) وګ. دوبله.

**ډبالی** (ḍabāláy) نر.م. ۱) دغلې خاورین کندو؛ ۲) د سپنګو د ونې تازه څانګه؛ ۲) ص. نر.م. غونډ منډ.

**ډباوه** (ḍabāwá) نر.م. ۱) د زین لاندېنۍ برخې چې د اس خوله جذبوي؛ ۲) ښځ.م. ډم اوبه، ډب اوبه

**ډباوی** (ḍabāwáy) نر.م. یو ډول مهر دی چې د سکو وهلو یا ضرب لپاره کارېږي.

**ډبټ** (ḍibít) نر.م. دبت؛ (اق.) ډبټ، ډیبټ، دت، پور، قرض، وام.

**ډبتېر** (ḍabtér) نر.م. لهوه، شرمنې.

**ډبډبانی** (ḍabḍabānáy) نر.م. د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

ډبډبنی (dabdabanáy) ص. نر.م. چورتي، فکري، مضطرب، ډبډی، شکمن، متزلزل.
ډبډبنی (dabdabanə́y) ښځ.م. فکر، شک، تراره، اضطراب، پرېشاني، تشويش.
ډبډنګ (dubdáng) نر.م. ډوب و ډنګ، بې تناسبه غټ سړی، بې ډوله غټ وجود
ډبډوب (dabdúb) نر.م. ۱) وهل ټکول، اخ و ډب؛ ۲) ص. نر.م. بېهوښه، بېحسه، بېخوده.
ډبډی (dabdáy) ص. نر.م. ۱) وګ. ډبډبنی؛ ۲) ناروغ، ناجوړه، مريض.
ډبر (dabár) ص.نر.م. ۱) وګ. تېر؛) تباه، هلاک، برباد، پوپنا.
ډبرپوه (dabarpóh) ص. تيږه پېژندونکی.
ډبرتوږنه (dabartozə́na) ا. تيږه ښويونه، تيږه توږنه، کاڼي ټکتوب، ډبرين لوښي جوړونه.
ډبرتوږی (dabartózay) ص. ډبرتوږونکی، سنګتراش.
ډبرکښي (dabarkaṣí) ا. تيږه ايستنه، سنګ کشي.
ډبرليک (dabarlík) ا. کتيبه، د قبر ليکلې شناخته.
ډبروالی (dabarwā́lay) نر.م. تباهي، هلاکت، بربادي، پوپنايي، ډبرتيا.
ډبروزمه (dabarwázma) ص. ا. کاڼي وزمه، سنګواره.
ډبروژنه (dabarwažə́na) ا. په تيږو ويشتل، سنګسار، رجم.
ډبرول (dabarawə́l) مص. مت. تباه کول، ستول، ميراتول، پوپنا کول، بربادول.
ډبره (dabə́ra) ښځ.م. ۱) کمر، تيږه، کاڼی؛ ۲) پ. ک. وګ. : تيږه؛ ۳) هېلۍ ته ورته يو ډول مرغۍ ده.

ډبری (dabaráy) ښځ.م. ۱) انبه، د مېز نيولو څمکنۍ تلکه؛ ۲) ډوبری، خبنته، نټه.
ډبرېدل (dabaredə́l) مص. ل. تباه کېدل، ستېدل، ميراتېدل، له منځه تلل، پوپنا کېدل، ژوبلېدل.
ډبرين (dabarín) ص. نر.م. د تيږې، د کاڼي، کانيز، ډبريز.
ډبک (dabák) نر.م ۱) د اوښ دکټې ولې؛ ۲) ارتوالی پراخوالی؛ ۳) ډبه خوټی؛ ٤) دريل، ښکېل، هغه پرې چې د ښاروي دوې پښې ورساندې تړل کېږي؛ ٥) بند بند تلونکی، په جوتو شوی.
ډبل (dabál) نر.م. ۱) تراټ، تلوار، منډه؛ ۲) مص. مت. وهل، ټکول؛ ۳) ص. نر.م. غبرګ، پنډ، غټ، غورش، دوه چنده، دوه لايه، جفت.
ډبلل (dabləl) مص. ل. بېلېدل، جدا کېدل.
ډبلو (dabaló) نر.م. ۱) څوبارې، د کاليو مينځلو دبی، د لتو پرېولو لرګی؛ ۲) لت.
ډبلی (dabaláy) ښځ.م. ۱) زبوټه، د غنمو ګونډې، مزري او... د ټکولو لرګينه آله؛ ۲) ګهوله، ګهوډه دوډی؛ ۳) نر.م دنداف او موچي د ټکولو لرګی؛ ٤) لتونه، ټکونې، وهنې.
ډبلی (dab láy) نر.م. کوټی، قطي، ډبلی، کوټی.
ډبلي (dabalí) ښځ.م.ج. لت، وهنه، ټکونه.
ډبلي مار (dablimā́r) ص. نر.م. ۱) مداري، شعبده باز، حقه باز؛ ۲) ښيښبه باز.
ډبن (dabán) نر.م. ۱) کنده، ژور ځای؛ ۲) مج. ډبنګ، غټ سړی.
ډبو (dabū́) ص.نر.م. چاغ، شلند، مزی، غټ.
ډبوزه (dabū́za) ښځ.م. يو ډول لوبه ده.
ډبوس (dabū́s) ص. نر.م. پړسېدلی، تمبوس.
ډبول (dabawə́l) مص. مت. ۱) وهل، درزول، په زوره وهل، پرېبل؛ ۲) ټکول، دربول.

ډبه (ḍabá) ښځ.م ۱) چوتره، سوپه، صفه؛ ۲) ستمبج؛ ۳) واګون، درېل یوه کوټه؛ ٤) د غوړو تیم؛ ٥) څلورلارې؛ ٦) سینه تنګي، سالنډی.

ډبهار (ḍabahā́r) نر.م. ډبا، د ډبولو یا وهلو پرله پسې اواز؛ ۲) د ډول وهلو پرله پسې غږ.

ډبی (ḍabáy) نر.م. وګ. ډبلو.

ډبۍ (ḍabə́y) ښځ.م. ۱) تربدنه، لړزه، رېږد، لرزه؛ ۲) لومه، دام؛ ۳) ډبه، دبه، د رېل واګون.

ډبیالی (ḍabyā́lay) ص. نر.م. مؤدب، د ادب خاوند، په ادب کې.

ډبېدل (ḍabedə́l) مص. ل. وهل کېدل، درزول کېدل، پرېېل کېدل.

ډپ (ḍap) نر.م. ۱) ډنډ اوبه، پرځای ولاړ اوبه؛ ۲) زیان، ضرر؛ ۳) تکبر؛ ٤) کلي ته نږدې د تفریح ځای؛ ٥) دخاورو کوچنۍ غونډۍ.

ډپټي (ḍipṭí) نر.م. ۱) استازی، وکیل، مرستیال؛ ۲) دیوې سیمې حاکم.

ډت (ḍat) نر.م. ۱) د ډانډټ اواز؛ ۲) د خره یا بل حیوان کوږ بار؛ ۳) خلی، خاشه، ډکی.

ډتن (ḍatán) ص. نر.م. ډارن، بېړندوکی.

ډتول (ḍatawə́l) مص. مت. ۱) آس په ډته بیول، آس په وړو قدمو بیول؛ ۲) شرمول.

ډتې (ḍáte) ښځ.ج. ۱) چتیات، پرتې؛ ۲) په خاورو کې د چرګو یا خرو غړېدنه؛ ۳) د خره لغتې.

ډتی (ḍatáy) ص. نر.م. وګ. ډتن.

ډتېدل (ḍatedə́l) مص. ل. ۱) آس په ډتو تلل، ډوبله وهل؛ ۲) چتیات ویل، اپلتې ویل.ی.

ډچکه (ḍačka) ښځ.م. ۱) ډسکه؛ ۲) شان و پر، دبدبه؛ ۳) یو ډول مرغۍ ده؛ ٤) لړزه، رپا.

ډچول (ḍačawə́l) مص. مت. ۱) د آس په ډسکه څغلول، آس چارنال څغلول؛ ۲) وهل ټکول.

ډچه (ḍə́ča) ښځ.م. وګ. ډچکه.

ډډ (ḍad) ص. نر.م. ۱) پړسېدلی؛ ۲) ګوګ، منځ تشی؛ ۳) غور اواز، بم اواز؛ ٤) مج. اصلیت، حقیقت؛ ٥) مرور، خپه؛ ٦) ببخ، ستیه.

ډډبډ (ḍáḍbad) ص. نر.م. ج. ۱) ډېر پړسېدلی؛ ۲) نامراده، ځوانیمرګ؛ ۳) غټ، لوی؛ ٤) رسېدلی، کامل.

ډډبېکی (ḍadbékay) نر.م. ۱) دتېکونو تش ځای؛ ۲) سبک، شیمه، توان؛ ۳) وګ. ډډی؛ ٤) یو ډول سابه دي.

ډډزنی (ḍadzə́nay) ص. نر.م ۱) د ډډې زنې خاوند؛ ۲) تېک، غوړزنی، تندرکی، رونګه.

ډډګی (ḍadgáy) نر.م. راشېبل، رشپېل، خوی.

ډډم (ḍaḍám) نر.م. هرزه وابنه، ساراني وابنه.

ډډنکی (ḍaḍə́nkay) نر.م. ۱) د زنې هډوکی، لاندینۍ زامه؛ ۲) غونډ منډ.

ډډنه (ḍaḍana) ښځ.م. پلټېنه، لټونه، تلاشي.

ډډو (ḍaḍū́) نر.م. ۱) چیلم؛ ۲) ص. نر.م. چاغ، شلنډ؛ ۳) لنډغر، لډر؛ ٤) غټه چونګښه.

ډډوالی (ḍadwā́lay) نر.م. ډډتوب، ډډتیا؛ ۱) پړسوب؛ ۲) مرورتوب؛ خپګان؛ ۳) داواز غوروالی، د اواز بم والی؛ ٤) ګوګ والی.

ډډور (ḍadwár) نر.م. کړه خبره، چینجنه خبره.

ډډوزه (ḍaḍū́za) ښځ.م. ۱) خوړسکه، تریخ لوګی؛ ۲) بدبوی، ډوزه؛ ۳) د توپک د ډز لوګی؛ ٤) مج. پوپنا؛ ٥) وګ. دروزه.

ډډوسی (ḍadwaṣáy) نر.م. [illegible] ښځې یې په لاس کوي.

ډډول (ḍaḍawə́l) مص. مت. ۱) پړسول، ګوګول، بنی کول؛ ۲) تشول، خالي کول؛ ۳) [illegible] ټول؛ ٤) بلاربول؛ ٥) بې لارې کول.

**ډډون** (ḍaḍū́n) نر.م. ۱) لتون، پلټنه، لټونه؛ ۲) پاړسوب؛ ۳) د منځ تشوالی، گوگ والی..

**ډډه** (ḍaḍa) ښځ.م. ۱) لوټه؛ ۲) د چلم سرخانه؛ ۳) پړسېدلې؛ ٤) اړخ، څنگ؛ ٥) مج. امتناع، ځان ژغورنه؛ ٦) د ډډ مؤنث شکل.

**ډډی** (ḍaḍáy) نر.م. ۱) بالښت، سروېړدی، تکیه؛ ۲) د بوسو خوسی.

**ډډۍ** (ḍaḍə́y) ښځ.م. د باروتو کڅوړه.

**ډډی بډی** (ḍaḍaybaḍáy) ص. نر.م. ډډبډ، ډېر پړسېدلی (د مرض له کبله).

**ډډېدل** (ḍaḍedə́l) مص. ل. ۱) پړسېدل؛ ۲) داواز غورېدل، بم کېدل؛ ۳) گوگېدل، منځ تشی کېدل

**ډډيي** (ḍaḍayí) ص. نب. ډډه کوونکی، شپه پر بیابان؛ له کوره بېگانه.

**ډر** (ḍar) ص. نر.م. بېعقل، احمق، خوشی، لوده.

**ډرادر** (ḍarādár) نر.م. یو ډول مرغی (مرغه) ده.

**ډرام** (ḍrām) نر.م. درامه، ۱) نمایش، ننداره تیاتر؛ ۳) (تي، اص.) هغه ادبي اثرچې د محاورې او عمل په مرسته یو داستان بیانوي.

**ډراماتیست** (ḍrāmātíst) ص. نر.م.ج. درامه لیکونکی، ډرام لیکونکی.

**ډراماتیک** (ḍrāmātík) ص. نر.م.ج. نمایشي، تمثیلي؛ مهیج او توجه جلبوونکی داستان.

**ډران** (ḍarā́n) نر.م. بد او خراب اواز، بدصوت.

**ډراوینگ** (ḍrāwíng) نر.م. و گ. رسم[۲].

**ډرایور** (ḍrāywár) نر.م. و گ. موټروان.

**ډربل** (ḍarbál) نر.م. د پسونو د جنگولو کلیمه ده.

**ډرپل** (ḍarpál) ص. نر.م. ۱) طفیلي؛ ۲) چاپلوس خوشامندگر؛ ۳) بېکاره او بې معاشه نوکر.

**ډرپلتوب** (ḍarpaltób) نر.م. ۱) فضولي، بې باکي؛ ۲) چاپلوسي، غوړه مالي.

**ډرپلی** (ḍarpaláy) نر.م. یو ډول پلې لرونکی سابه دي.

**ډرتک** (ḍarták) ص. نر.م. ۱) تیزن، گوزک؛ ۲) اپلاکي ویونکی، ناشودي ویونکی.

**ډرتکې** (ḍartáke) ښځ.ج. جوتکې، قرتکې.

**ډرتن** (ḍərtán) ص. نر.م. ۱) تیزن؛ ۲) ناشودي ویونکی، اپلاکي ویونکی.

**ډرتې** (ḍárte) ښځ. ج. اپلاکي، ناشودي، چټیات.

**ډرس** (ḍras) نر.م. غوېې ته په غوا باندې د ختلو پر وخت اواز.

**ډرسک** (ḍarsák) نر.م. هجوم، گڼه گوڼه، ازدحام، اتمبار.

**ډرن** (ḍarán) ص. نر.م. ډارن، بېرندوکی، ډرو.

**ډرۍ** (ḍarə́y) ښځ.م.ج. ډروجانې، ریشخند، ملنډې.

**ډری** (ḍəráy) نر.م. د پسونو او مېږو د رابللو اواز.

**ډرې** (ḍə́re) ښځ.م. د پسونو او مېږو د راگرځولو او شړلو اواز.

**ډرېدل** (ḍəredə́l) مص. ل. ۱) تړېدل، پړېدل؛ ۲) مج. ناشودي او اپلاکي ویل، پرتې ویل.

**ډریلی** (ḍaryaláy) نر.م. یو ډول پلې لرونکې گیاه ده.

**ډز** (ḍaz) ص. نر.م. ۱) احمق، بېړا؛ ۲) درواغجن؛ ۳) د ټوپک فیر، د ټوپک اواز.

**ډزا** (ḍazā́) ښځ.م. ډزونه، ټکونه، ټکان، ډزهار.

**ډزاوو** (ḍazā́wū́) نر.م. املوک، د امبلوک مېوه.

**ډزوډوز** (ḍazuḍū́z) نر.م. ډزهار د ټوپکو پرله پسې ټکونه یا غږونه، د چاودنو اوازونه.

**ډزوغپ** (ḍazuğap) ا. و گ.: ډزوغړپ.

**ډزوغړپ** (ḍazuğrā́p) نر.م. وهل ټکول، خرپ د خروپ، اخ و ډب.

**ډزول** (ḍazawə́l) مص ١) ویشتل، په توپک باندې ډزونه کول؛ ٢) وهل، ټکول؛ ٣) مج. څکول، دودول؛ ٤) ټرول، ټزول.

**ډزه** (ḍáza) ښځ.م. دوبره، مقعد، سومبې، غره، سغې.

**ډزهار** (ḍazahā́r) نر.ج. د توپکو پرله پسې غږونه، د چاودنو پرله پسې اوازونه.

**ډزی** (ḍázay) ور. یوه لاحقه ده چې مرکبه کلیمه وروباندې جوړېږي لکه: لس ډزی توپک.

**ډزې** (ḍáze) ښځ.ج. ١) غوروې پرې، خلاف ویل؛ ٢) د توپک وارونه، د توپکو ټکانې، فیر.

**ډزېدل** (ḍazedə́l) مص.ل. ١) ویشتل کېدل؛ ٢) وهل کېدل، ټکول کېدل، وهل خوړل.

**ډسپلین** (ḍisiplín) نر.م. ډیسیپلین، دسپلین؛ سمون، انضباط، انتظام، نظم او ترتیب.

**ډسکي** (ḍáski) ښځ.ج. ډزی، باټې، لاپې شاپې.

**ډسمس** (ḍismís) ص. نر.م.ج. ١) ګډوډ، ویران ویجاړ، خراب؛ ٢) څګرخون، خپه؛ ٣) معاف، ایله.

**ډغ**[1] (ḍə̆ğ) نر.م. ١) د کوترې هومره یوه مرغۍ ده؛ ٢) د سترګو یو ډول ناروغي ده.

**ډغ**[2] (ḍuğ) نر.م. د سپښتو په لوبه کې هغه چاچې د تولو په اخیر کې خپل وار کوي.

**ډغډغی** (ḍağḍağáy) ښځ.م. دغدغی، د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

**ډغډغی** (ḍağḍağáy) نر.م. ١) خربودنه، مرز ته ورته یوه مرغۍ ده؛ ٢) و ګ. ډغډغی.

**ډغره** (ḍağára) ښځ.م. ټکره، ډکه، تصادم، مقابله.

**ډغرې** (ḍağáre) ښځ. ج. پوچې خبرې.

**ډغری** (ḍağaráy) ښځ.م. سرجنګي، کتې جنګونه، سرونه سره جنګول، غرغچې.

**ډک**[1] (ḍak) ص. نر.م. ١) خولې تر خولې، خولې په خولې، لبریز، موخه؛ ٢) ټکر، ډکه، تصادم؛ ٣) نر.م. غرض؛ ٤) موړ؛ ٥) ډکی، منډکی؛ ٦) دڅېرې پانه؛ ٧) غوایانو ته د ترلو لپاره د رضا کېدو کلیمه.

**ډک**[2] (ḍik) نر.م. و ګ. ډیک.

**ډکار** (ḍakā́r) نر.م. اروړی، تېغ.

**ډکال** (ḍakā́l) نر.م. ١) وچوبه، وچکالۍ، سوکړه؛ ٢) د لوږې مرګ؛ ٣) ناڅاپي مړینه یا مرګ.

**ډکتوب** (ḍaktób) نر.م. ډکتیا، ډکوالی.

**ډکره** (ḍakrá) ا. پارکی، ټوټه، قطعه.

**ډکول** (ḍakawə́l) مص. مت. ١) خولې تر خولې کول؛ ٢) بلاربول؛ ٣) سرخانه ډکول؛ ٤) مړول.

**ډکون** (ḍakū́n) ص. نر.م. ج. ١) ډک ځای، مزدحم ځای، دګنې ګونې ځای؛ ٢) نر.م. ډکوالی.

**ډکه** (ḍaká) ښځ.م. ١) صدمه، ټکر؛ ٢) د اوبو د مخې ګرځولو شنډی، بند؛ ٣) د پیرې نیولې حالت؛ ٤) ذمه، عهده؛ ٥) د ویالې غاړه پخول ٦) واقعه، پېښه؛ ٧) ص. د ډک مؤنث؛ ٨) بلاربه ښځه.

**ډکی** (ḍákay) نر.م ١) منډکی، کوچنۍ وچه لښته؛ ٢) د ږیرې وېښته؛ ٣) خاشه، پیلته.

**ډکېدل** (ḍakedə́l) مص. مت ١) تر خولې ډکېدل؛ ٢) بلاربېدل؛ ٣) مړېدل؛ ٤) مج. پېزې ته رسېدل، خپه کېدل.

**ډګ** (ḍəg) ص. نر.م. ١) نېغ؛ ٢) نر.م. ډوبله، د آس هغه تګ چې سپور پورته پورته غورځوي او یرغه ځي؛ ٣) نر.م. برنګی، د لینډې دوشاخه؛ ٤) نغری، دېګدان؛ ٥) اور.

**ډګډګی** (ḍəgḍagáy) ښځ.م. کنډه کپره ځمکه، کانیزه او لوړه ژوره ځمکه.

**ډګډګی** (ḍagḍágay) نر.م. تکتکنی، تکتکانکه، د شیطان تکتکی.

**ډګډګلی** (ḍagḍəgaláy) ص. نر.م. ۱) ګېوډ، درهم و برهم؛ ۲) نر.م. د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**ډګر** (ḍagár) نر.م. ۱) میدان، بیابان، اواره دښته؛ ۲) محاذ؛ ۳) د یوه مارغه نوم دی.

**ډګرجنرال** (ḍagarjanrā́l) نر.م. له تورن جنرال نه یوه رتبه لوړ عسکري منصبدار.

**ډګرمن** (ḍagarmán) نر.م. له جګړن نه یوه رتبه پورته چې د ملکي له څلورمې رتبې سره برابره ده.

**ډګروال** (ḍagarwā́l) نر.م. له ډګرمن نه یوه رتبه پورته له دریمې ملکي رتبې سره برابره عسکري رتبه.

**ډګره** (ḍagára) ښځ.م. ډوګره، ډوګری، وېجاړه ځمکه، شنډه ځمکه.

**ډګري** (ḍigrí) ښځ.م. ب ډیپلوم، شهادتنامه.

**ډګلن** (ḍəglán) ص. نر.م. و ګ. ډوبله.

**ډګلنډ** (ḍuglánd) ص. نر.م. و ګ. ډوبله.

**ډګله** (ḍəgla) ښځ.م. کوتنه، تنګ پرتوګ.

**ډګول** (ḍagwál) نر.م. هغه ځېره چې په هغه کې شاروي پنډوي یا یې په کې تړي.

**ډګه** (ḍə́ga) ښځ.م. ذکر، د نارینه د تناسلي آلت.

**ډګه بوز** (ḍəgabóz) ص. نر.م. شهواني، شهوتي.

**ډګه ور** (ḍəgawár) ص.نر.م.ج. شهواني، شهوتي

**ډګی** (ḍəgáy) ص. نر.م. تېپ شاروی، ډنګر شاروی.

**ډګی** (ḍəgáy) ښځ.م. ۱) ډګګی، د ډګه مصغر؛ ۲) هغه لښته چې سر یې کوږ وي.

**ډل** (ḍal) نر.م. ۱) موغوري، د وازګې غوړي؛ ۲) ښانګور لرګی؛ ۳) د ویالو جوړولو یوم؛ ٤) ګڼې ګوري وني؛ ٥) ډله، جمعیت.

**ډلپال** (ḍalpā́l) ص. د یوې ځانګړې (ټولنیزې، سیاسي ...) ډلې یا ټولنې پالونکی او اړوند، ګروهپرست.

**ډلپالنه** (ḍalpālə́na) ا. د یوې ځانګړې ډلې پالنه.

**ډلکی** (ḍalkáy) نر.م. د غړکې هغه نیمه برخه چې وچه شوې وي او کورت ی په کې ساتل کېږي.

**دلګی** (ḍ(ə,i)lgáy) ښځ.م. ۱) د ډلې مصغر، وړه ډله؛ ۲) د عسکرو یوه وړه ډله ده چې معمولا د ۹ کسو څخه جوړه وي.

**ډلګی** (ḍalgáy) نر.م. د ډل مصغر.

**ډليال** (ḍalyā́l) ا. د ډلې مشر، د ډلې لاربنود.

**ډلګی مشر** (ḍalgaymášər) نر.م. د ډلګی قومندان، له ۳-۹ کسو مشر.

**ډلمشر** (ḍalmašə́r) ص. د ډلې مشر، ډليال.

**ډلواک** (ḍalwā́k) ص. د جمهوري اړوند، جمهوري، جمهوريپال، جمهوري پال ګوند (republican).

**ډلواکي** (ḍalwākí) ا. جمهوريت، (republican).

**ډلوګی** (ḍalugáy) ښځ.م. بډی، سوډی، مکاره بوډی، بوډوګی، چالاکه بوډی.

**ډله** (ḍála) ښځ.م. ۱) جمعیت، ګروپ، ګڼ خلک؛ ۲) ګڼې وني؛ ۳) ګوند، حزب، پارټي.

**ډله ییز** (ḍalaíz) ص. نر.م.ج. ۱) دسته جمعي، ګروپي، ګروهي، په ګډه سره؛ ۲) د یوې ډلې.

**ډلی** (ḍaláy) ښځ.م. ۱) د جارو شویو خلو څخه لوښی، خاک انداز؛ ۲) د اینځر ټولولو توکری؛ ۳) د خوشایو ټولولو آله.

**ډليت** (ḍalít) نر.م. اردلی، هغه سپاهي یا ملازم چې د خپل بادار په خدمت کې حاضر وي.

**ډم** (ḍəm) نر.م. ۱) سندرغاړی، مطرب؛ ۲) نایي، ګلابي، دلاک؛ ۳) وینې کښېونکی؛ ٤) د ډول اواز؛ ٥) ولاړې اوبه؛ ٦) د اوبو بند؛ ۷) داغ.

**ډمامه** (ḍamāmá) ښځ.م. ۱) مو. نغاره، نقاره، طبل: د موسیقی له پخوانیو آلاتو څخه ده؛ ۲) ډنډوره، جار، آوازه.
**ډمامې** (ḍamāme) ښځ.ج. مړې اوبه، غلې اوبه.
**ډمبرګلی** (ḍambargwálay) نر.م. جعفري ګل.
**ډمبره** (ḍambára) ښځ.م. ۱) غومبسه، بمبره غالبوزه، ډمبره، ګاوزنبوره؛ ۲) يو ډول اغزنه غرنۍ ونه ده چې دانې يې د تورمرچ هومره وي.
**ډمبکی** (ḍambakáy) نر.م. ډمبک، ډومبک، کوچنی يا وړوکی ډول.
**ډمبلي** (ḍamblī́) نر.م. (مو.) د ۹ ماترو يو تال دی.
**ډمبو** (ḍambó) ښځ.م. د ښځو مخصوصه لامبو، ډينجو، انډوقی.
**ډمبه** (ḍambá) ښځ.م. ببلچه، چاري.
**ډمبهار** (ḍambahā́r) نر.م. ډمهار، ډډول يا دوړی پرله پسې اواز.
**ډمپنګ** (ḍampíng) نر.م. (اق.) ۱) داستعمال لپاره موقتي ذخيروي مواد؛ ۲) د رقابت لپاره کوم جنس په ډېره ارزانه بيه خرڅول.
**ډمخونه** (ḍəmxū́na) ا. د نايي دوکان، د سلماني خونه.
**ډمګی** (ḍəmgáy) نر.م. ۱) د ډم مصغر؛ ۲) داوبو تربړی، ډنډ، د اوبو ډنډوکی.
**ډمول** (ḍamawә́l) مص. مت. اوبه ډنډول، اوبه ډبول، اوبه ډب کول.
**ډمه** (ḍáma) ښځ.م. د ډم مؤنث، ۱) سندرغاړې، مطربه، سازنده؛ ۲) سينګاروونکې.
**ډمې** (ḍáme) ښځ.م. د ماشومانو يو ډول لوبه ده.
**ډمېدل** (ḍamedә́l) مص. ل. اوبه ډنډېدل، اوبه ډم کېدل، اوبه ډب کېدل، کوړمېدل.

**ډنبری** (ḍanbáray) نر.م. کبابه، کبابه چيني، کبابه د يوې ونې د مېوې نوم دی.
**ډنډ** (ḍand) ص. نر.م. ۱) حوض، تربړی، تربلی، جوړ، تالاو؛ ۲) ص. کوډم، ولاړی؛ ۳) ښېرازه وادي؛ ٤) دهنداري مخ؛ ۵) تروټه، تاوان.
**ډنډا** (ḍandā́) ښځ.م. وګ. ډنډوره.
**ډنډاره** (ḍandā́ra) ښځ.م. ۱) ډونډۍ، ډنډر، ساقه؛ ۲) بمبره، غومبسه ۳) ځورب سړی، مزی سړی؛ ٤) وګ. ماشوړه.
**ډنډاس** (ḍandā́s) نر.م. ډانډس، دنداف لېندی، د ډېنډاپ د ډېنډاپې لېنده.
**ډنډاکی** (ḍandā́kay) نر.م. دورانه د ښخ هډوکی.
**ډنډالی** (ḍandā́láy) نر.م. جارچي، نغاره چي.
**ډنډاو** (ḍandā́w) نر.م. وګ. ډنډ.
**ډنډتال** (ḍandtā́l) نر.م. د ۱۲ ماترو يو تال دی.
**ډنډر** (ḍandár) نر.م ۱) ډونډۍ، دنبات ډنډه، ساقه؛ ۲) د چارګل او پېزوان سيخ.
**ډنډرولوجي** (ḍindrolojí) ښځ.م. د ونو پوهنه، د ونو علمي مطالعه، ونه پېژندنه.
**ډنډروکرونولوجي** (ḍindrokronolojí) ښځ.م. دوران پېژندنه او د چاپېريال د لرغونتوب مطالعه.
**ډنډغر** (ḍanḍağár) نر.م. تهانګسر، د اخورکنګر، له ښارويونه پاتې شوې پروړه، لواړيوس.
**ډنډکی** (ḍandakáy) نر.م. (پخ.) کچړی، کيچړی، کيچړي کورت، کورت و وريجي.
**ډنډګلی** (ḍandgwálay) نر.م. شين پانی، ډوډه، ډنډه، د نيلوفر ګل، نيلوفر.
**ډنډوب** (ḍandób) نر.م. ۱) ډنډاو، اوبه په کې ډنډول؛ ۲) ص. نر.م. بې عاطفې، بې رحمه.
**ډنډوره** (ḍandorá) ښځ.م. ۱) نغاره؛ ۲) مج. جار، بوله، اوازه.

ډنډوره چي (ḍanḍoračí) ص. نر.م. جارچي، ډنډالی، نغاره چي، جاړ کرځوونکی.

ډنډوری (ḍanḍuráy) نر.م. و ګ. ډانډی[1].

ډنډوکاري (ḍanḍukā́re) ښځ. ج. فریادونه، چیغې، نارې، واویلاوې، انګولاوې.

ډنډوکی (ḍanḍū́kay) نر.م. وړوکی ډنډ، ډنډګی، حوضچه، تالاوګی.

ډنډول (ḍanḍawә́l) مص. مت. ۱) ډمول، اوبه ایسارول؛ ۲) په چا باندې مال تاوانول.

ډنډه (ḍánḍa) ښځ.م. ۱) د ډنډ مؤنث؛ ۲) دشولو لوی پټی چې اوبه په کې ډنډېږي؛ ۳) د نبات ډنډر؛ ۴) د تلې ډانډه، بسوټی؛ ۳) ډنډر، دچارګل او ښزوان سیخ چې په پوزه کې تومبل کېږي.

ډنډه کېلک (ḍanḍakelák) نر.م. اډ، ډی، یو ډول لوبه ده.

ډنډی (ḍanḍә́y) ښځ.م ۱) وتلې ډانډی؛ ۲) دغوړ نرمی؛ ۳) په تول کې فرق؛ ٤) لاس وهنه.

ډنډېدل (ḍanḍedә́l) مص. ل. ډمېدل، اوبه په یوه ځای کې درېدل یا راغونډېدل.

ډنډيې (ḍanḍayí) ص. نب. هغه آس چې د ګاډی نه آس سره د روړدولو لپاره تړل کېږي.

ډنګ (ḍang) نر.م ۱) د درېې یا ډول اواز؛ ۲) اریان په دریان، په چورت کې ډوب.

ډنګار (ḍangā́r) نر.م. داروکار، یو مضر بوټی دی.

ډنګالی (ḍangāláy) ښځ. الچه، یو ډول ټوکر دی چې پټه پټه خطونه لري.

ډنګر (ḍangár) ص. نر.م. ۱) خوار، کم غوښی، د شورب ضد؛ ۲) نر.م. څاروی، غوا، غویی.

ډنګرکه (ḍangaráka) ښځ.م. ۱) د ډنګر تأنیثي مصغر؛ ۲) پرپره، ګوبلکه، ډینګری، تیتری.

ډنګرکی (ḍangarákay) ص. نر.م. د ډنګر مصغر.

ډنګروالی (ḍangarwā́lay) نر.م. ډنګرتوب، زهیرتوب، کمزورتیا، جسمي ضعف.

ډنګری (ḍangaráy) نر.م. ۱) د ډنګر مصغر؛ ۲) د ګونډیو ټکولو ډبی یا کوتک.

ډنګلی (ḍingalә́y) ښځ.م. د ښاه یا کوهي اړم.

ډنګوټی (ḍangūṭáy) نر.م. سکو، جونګړی د تنستې سه پایه.

ډنګول (ḍangawә́l) مص. مت. ۱) ډول وهل، نغاره وهل؛ ۲) د موسیقي سیمي آلات ږغول؛ ۳) ډنډوره وهل؛ ٤) مج. رسوا کول، تشهیرول.

ډنګهار (ḍangahā́r) نر.ج. د ډول او نغارې پرله پسې آواز، درنګهار.

ډنګېدل (ḍangedә́l) مص. ل. ۱) ډول یا نغاره وهل کېدل؛ ۲) مشهورېدل، رسوا کېدل؛ ۳) ډنډوره وهل کېدل؛ ٤) درنګېدل، ترنګېدل.

ډنګي ډوال (ḍangiḍiwā́l) ص. نر.ج. ډنګې ډیوال، خلاص، دریه، پرمخ خلاص.

ډنه (ḍә́na) ص. ښځ.م. شیګاړه، متمیزه، هغه ښځه چې په چا پسې تنبتېدلې وي.

ډو (ḍo) نر.م. د ګام د لومړنی نوټ نوم.

ډوب (ḍūb) ص. نر.م. ج. ۱) غرق، لاهو، یوپ؛ ۲) اریان، ورک.

ډوبره (ḍubә́ra) ښځ.م. یوه غرنۍ ونه ده.

ډوبلن (ḍūblán) ص. نر.م. د ګلان، د ګ، ډوبله وهونکی آس.

ډوبله (ḍū́bla) ص. ښځ.م. ۱) د ګ، د یرغه ضد؛ د آس نا اوار تګ؛ ۲) و ګ. دوبله.

ډوبلی (ḍūbaláy) نر.م. دسپورټ یا پهلوانۍ سامان.

ډوبلی (dubláy) ښځ.م. ۱) کورکه، کناکه؛ ۲) متکور، دجوارو او غنمونیم وریت شوی وږی؛ ۳) د جوار پرپری، تنته؛ ٤) بخیل، سوګت.

**ډوب ماکو** (ḍūbmakú) نر.م. وگ. اوبتل.

**ډوبنی** (ḍubánay) نر.م. د اوبو ژوروالی.

**ډوبوالی** (ḍūbwálay) نر.م. ډوبتیا، ډوبېدنه.

**ډوبول** (ḍūbawál) مص.مت. غرقول، لاهو کول، په اوبو کې منډل، په اوبو کې ننوېستل.

**ډوبی** (ḍūbáy) نر.م. دبلی، دنسوارو کوتی.

**ډوبۍ** (ḍobə́y) ښځ.م. ۱) خوبی، سرداوه، سرویی؛ ۲) نګوښېدنه؛ ۳) د زړه ضربان.

**ډوبېدل** (ḍūbedə́l) مص.ل. ۱) غرقېدل، لاهو کېدل، یوپېدل؛ ۲) په فکر کې سرګومه تلل.

**ډوبې ډوبیا** (ḍūbeḍūbyā́) ص.نب. ښېخي ترې تم، بالکل ورک.

**ډوپکنی** (ḍupkanáy) ښځ.م. د خا... ...ېری.

**ډوپۍ** (ḍūpay) ښځ.م. ۱) ترخسکې ... اوبو زېرمه؛ ۲) نګوښېدنه، ګوډګوډ تسه

**ډوډ** (ḍod) نر.م. ډنډه، نیلوفر، ډنډګلی.

**ډوډا** (ḍuḍá) ښځ.م. ۱) یو ډول بوټی دی چې سر یې بوه اغزنه غوزه لري؛ ۲) ډوډه، د کوکنار غوزه.

**ډوډه**[(۱)] (ḍoḍa) ښځ.م. ۱) د کوکنارو غوزه، لاډو؛ ۲) جراری، د جوارو ډوډی، سورسک.

**ډوډه**[(۲)] (ḍoḍá) ښځ.م. اداده، داده، الوی، د جوارو الوی، د جوارو د وږو د غوټیو وریتونه.

**ډوډی** (ḍúḍay) نر.م. ۱) ارخ؛ ۲) ترتشي لاندې هډوکی، د کوناټی د سر هډوکی؛ ۳) د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

**ډوډي** (ḍūḍí) ص.نر.م (ج. ډوډیان) ۱) غوړه مال، چاپلوس؛ ۲) مج. جاسوس، مخبر.

**ډوډۍ** (ḍoḍə́y) ښځ.م. ۱) مړی، ټیکله، نغن؛ ۲) کتغ، اتام، خواړه، طعام، روټی.

**ډوډۍ خونه** (ḍoḍəy xūna) ا. خوراکخونه، د ډوډۍ خوړلو خونه.

**ډوډۍ غړپ** (ḍoḍəyğráp) ص.نر.م. ۱) اروا وږی، ستروږی؛ ۲) حریص، نه مړېدونکی.

**ډوډۍ کغالی** (ḍoḍəykuğā́lay) نر.م. تنور، د ډوډۍ پخولو تنور؛ وګ. تنور.

**ډوډي مار** (ḍoḍimā́r) ص.نر.م. لنګري، سخي، د دسترخان خاوند.

**ډور** (ḍor) نر.م ۱) داروونکی ځنګل؛ ۲) وېروونکی ځای؛ ۳) دګازې، جال.

**ډورکندی** (ḍorkandáy) نر.م. وګ. ګورګټی.

**ډورګټۍ** (ḍorgaṭáy) ښځ.م. وګ. ګورګټی.

**ډوره** (ḍora) ص.ښځ.م. ۱) شلېدلی، څیرې، بړه؛ ۲) مج. مفعول (هلک).

**ډرۍ** (ḍuráy) ښځ.م. ډوره،لی، څېره، قبر، ګور.

**ډوری** (ḍūráy) نر.م. ۱) ننبه، نخښه، ننبانه؛ ۲) څېره، شکل؛ ۳) داروونکې ننبه، څروی.

**ډوریا** (ḍūryā́) ښځ.م. یو ډول ټوکر دی.

**ډوز**[(۱)] (ḍuz) نر.م. ۱) ډز، د ټوپک اواز؛ ۳) د یو شي د لوېدو اواز، له لوېدونه د ماشوم د ژغورلو غږ.

**ډوز**[(۲)] (ḍoz) نر.م. دوز، ډوس؛ ۱) یو خوراک دوا یا دارو؛ ؛ ۲) د یو شي تاکلی مقدار.

**ډوزن** (ḍūzán) ص.نر.م. ۱) تیزن؛ ۲) باټک، غورتن، باټو، لاپو.

**ډوزه** (ḍū́za) ښځ.م. درواغ، غوره، لاپه، باټه.

**ډوزی** (ḍúzay) ص.نر.م. ۱) احمق، شوده، سوډر؛ ۲) درواغجن، لاپو.

**ډوغ** (ḍūğ) نر.م ۱) توخ، د توخي اواز؛ ۲) د سپښتو په لوبه کې هغه چاته چې د تولو لوبغاړو په اخېر کې وار کوي.

**ډوغل** (ḍūğə́l) مص.ل. ۱) وګ. توخل؛ ۲) نر.م ژوږ؛ کنده، کوندغالی، ژور ځای.

ډوغن (dūǧán) ص. نر.م. توخن، هغه شوک چې ډېر توخېږي.

ډوغېدل (dūǧedál) مص.ل. و.گ. توخېدل.

ډوک (dūk) نر.م ۱) ډوکی، ډکی، منډکی، خاشه؛ ۲) یو ډول اغزن بوټی.

ډوکال (dūkā́l) نر.م. ۱) وچکالي؛ ۲) ناڅاپي مړینه یا مرگ.

ډوکټورا (dūktūrā́) ښځ.م. دکټورا، دکتورا، ډاکټري، داکتري؛ هغه درجه یا موقف او عنوان چې یو چاته د هغه د تاکلو تحصیلاتو په پای کې د پوهنتون له خوا اعطاء کېږي

ډوکټوریسه (dūktorísa) ښځ.م. ډوکټورس، دکتوریسه، ډاکټره، هغه ښځه چې ډاکټره وي.

ډوکټورین (dūktorín) نر.م.ج (سي.) دکتورین، ډکتورین. ۱) نظریه، فکر، تز، تیزس، عقیده، فلسفي، سیاسي یا اقتصادي نظریه؛ ۲) لار، مشې، آیین.

ډوکړه (dūkṛá) ښځ.م. د تبلې د یوه تال نوم.

ډوکه[۱] (dūká) ښځ.م. ۱) د خجورې وښکلوی، د خرما گونگوری؛ ۲) د یوې تنستې پنځو پنځو تارونو چې سره اوبدل کېږي.

ډوکه[۲] (doká) ښځ.م. ۱) دوکه، چم، چل، فریب؛ ۲) لویه څمڅه، غټه څمڅې، چمچه.

ډوکه مار (dok amā́r) ص. نر.م. دوکه باز، چمباز، درغلی، تېرایستونکی.

ډوگره (dográ) ص. نب. بې پیسې، غریب، خوار؛ ۲) ډوگره مست، د بدې لارې ملگری، بېباکه.

ډوگره گي (dogragí) ښځ.م. بېباکي، بې حیایي، بې شرمي.

ډوگره مست (dogramást) ص. نر.م. ډوگره، بېباکه، د بدې لارې ملگری.

ډوگل (dugál) نر.م. ۱) ډیگله، ډوگله، دمرغانو جاله، ځالگی، ځاله؛ ۲) دقیت، خپگان.

ډوگلاند (dūglā́nd) نر.م. هغه آس چې په ترپکو ځي.

ډوگم (dū́gam) نر.م. ډگم، دگم، جزم، جزمیت؛ و.گ. ډاگما.

ډوگول (dūgawə́l) مص. مت. ترټل، ببرول، وبرول، ملامتول، یرول، توبیخول، دگل.

ډوگي (dūgí) ص. نر.م. و.گ. ډاگي.

ډول[۱] (dol) نر.م. ۱) زموږ د کلیوالي موسیقۍ د آلو څخه یوه آله ده؛ ۳) سلواغه؛ ۳) د ژرندې تخت، د ژرندې د غله اچولو برخه.

ډول[۲] (dawl) نر.م ۱) طریقه، روش، سبک، رنگ، شکل، بڼه؛ ۲) من. و.گ. جنس؛ ۳) من. و.گ. نوع؛ ٤) فېشن، سینگار؛ ٥) دارټ یو ډول آله ده چې سوري سوري وي.

ډول[۳] (dūl) نر.م. کرار کرار او دروند تگ.

ډولاډنگه (dulādánga) ښځ.م ۱) غوم غومباکه، د ماشومانو استسقاء؛ ۲) ټنیل او چتې سړی.

ډولبره (dolbará) ښځ.م. د ژرندې هغه برخه چې دانې ژرندې ته ورتوییږي.

ډول تکور (dawaltakór) نر.م. و.گ. ډول ډیل.

ډولچه (dolčá) ښځ.م ۱) ډوله، تملوټ؛ ۲) بوکه، د څا سلواغه.

ډولچي (dolčí) ص. نر.م. ډول وهونکی، ډولزن، غازي، ډولکی.

ډول ډال (dawldā́l) نر.م. و.گ. ډول ډیل.

ډول ډبلي (doldabaláy) نر.م. د کور سامان، اثاث البیت، اثاثیه.

ډول ډنگول (doldangawál) مص. مت. ډول وهل، ډول دربول، ډول ړغول.

**ډول ډیل** (dowldíl) نر.م. ډول ډال، سینگار، سینگارونه، آرایش، ښکلنه.

**ډولک** (dolák) نر.م. ډوبمک، ډومبکی، ډولکی، ډولگی، وړوکی ډول، کوچینی ډول.

**ډولکی** (dolakáy) نر.م. ۱) وگ. ډولک؛ ۲) کوتی قطي؛ ۳) هغه څه چې د لمر یا اور په وسیله سره وچ کلک شي.

**ډولکې** (dolak ٲ) ص. نر.م. ډولزن، ډولچي، ډول وهونکی.

**ډولکی** (dawlakáy) ص. نر.م. فېشني، ډولي.

**ډولول** (dulawál) مص. مت، ورو ورو ښورول، ورو ورو شړل یا کتول. کرار کرار څغلول.

**ډوله** (dola) ښځ.م. ۱) ډولچه؛ ۲) ژو[illegible] سندل شوی ژور څای چې اوبه په کې ساتل ک[illegible]

**ډولی** (dawaláy) نر.م. مال، دولت، ثروت، شته.

**ډولي** (dawlí) ص. نر.م. فېشني، سینگاري.

**ډولی** (doláy) ښځ.م. د ناوې جوپان، د ناوې کجاوه، د ناوې حجله.

**ډولېدل** (dūledál) مص. ل. ورو ورو تلل، کرار کرار رهي کېدل، سوکه سوکه کتېدل.

**ډولی مار** (doláymār) نر.م. جوپان والا، ډولی والا، هغه څوک چې ډولی وړي.

**ډومارل** (dumārál) مص. مت ۱) گومارل، پارول، لمسول، چمتوکول؛ ۲) سترگې کښېته اچول.

**ډومبخه** (dumbáxa) ښځ.م. کوبی، داوبو پوکانه، د اوبو په سر غوټۍ، پړومبې.

**ډومبسکه** (dūmbáska) ښځ.م. ډډه څمکه، هغه شکل چې یوه څمکه یې د مرخېړیو د راټوکېدو په وخت کې غوره کوي (ډډه کېږي).

**ډومبکه** (dūmbáka) ښځ.م. ډومبک، ډومبکی، تور دلی، یو ډول سپېره (خړه) وړه مرغی ده.

**ډومبکی** (dūmbákay) نر.م. ۱) وگ. ډولک؛ ۲) د ماشومانو وړوکی دریه یا ډول دی؛ ۳) یوې تورې ترخې مادې دی چې د غومبسو په توېکې کې پیدا کېږي.

**ډومبوری** (dumbūráy) نر.م. ډمبوری، ډېران، ډېری، کوټه، د سرې (انبارو) او خوشیو کوټه.

**ډومبېک** (dūmbék) نر.م. یو ډول مرغی ده.

**ډومډومک** (dūmdūmák) نر.م. یو ډول کوچنی مرغی ده چې تورې ښکې لري.

**ډونډ**[1] (dūnd) ص. نر.م. ۱) تباه، برباد؛ ۲) ښځ. ستنه؛ ۲) لټون، لټونه، پته، تلاش، څرگندونه.

**ډونډ**[2] (dond) نر.م. ډنډوره، نغاره، جار.

**ډونډاکی** (dūndākáy) نر.م. د کوناټي هډوکی، د ورانه د ښځ هډوکی، د گردي هډوکی.

**ډونکی** (dūnkáy) نر.م. د خاورو غورځولو یوه اوسپنیزه آله.

**ډونگ** (dong) نر.م. ۱) چپاول، لوټ، چور، د خارویو چور؛ ۲) غرور، تکبر؛ ۳) تمسخر، پیشاره.

**ډونگ ډونگ** (dūngdū́ng) نر.م. برېره، غُر غُر، غرړی، زونگ زونگ.

**ډونگری** (dūngráy) ښځ.م. ۱) لویه څمځی، لویه څمځه؛ ۲) دونگری، ببک، څپه، تامبېری جینگاون، د کښتی ښلچه، پارو.

**ډونگله** (dūnglá) ښځ.م. ډینگری، ډنگله، د څاه څخه د اوبو ویستلو یوه آله ده.

**ډونگن** (dūngán) ص. نر.م. منگن، زونگ، غونېزن، څوک چې په پزه کې خبرې کوي.

**ډونگه** (dónga) ښځ.م. ۱) ډینگاله، د کوناټو او ملا تر منځ برخه؛ ۲) توکه، تکاله؛ ۳) ډینگله، د چرگ شاتنی برخه.

ډونګهار (dūngahā́r) نر.ج. ۱) غرڼهار، غونهار، بونهار؛ ۲) زونګ زونګ کول، غُر غُر کول.

ډونګی (dongay) ص. نر.م ۱) توکي، مسخراچي، ۲) ډاکه مار، داړه مار؛ ۳) ژور، عمیق؛ ۲) راز داره، راز ساتونکی.

ډونګېدل (dūngedə́l) مص. ل. بونګېدل، منګېدل، زونګېدل؛ د څانه سره داسې ږغېدل چې څوک سم نه پرې پوهېږي..

ډوو (dawū́) ص. نر.م. تېرو، پرو، تیزن، تېرن.

ډوول (dawū́l) نر.م. سګ ماهي، مسینګی، کتبه سېږی.

ډوه (duwá) ښځ.م. ډالی، تحفه، سوغات.

ډوهر (dohár) ص. نر.م. ډوقر، ډوغر، ګوبا، زهیر او ډېر کمزوری سړی.

ډوی (doy) نر.م. باک، پروا، آر.

ډهکه (dahā́ka) ص. ښځ.م. لس ګون، لسیز.

ډی (day) نر.م. ۱) د تنستې هغه لرګی چې د دوو دوښاخو په سر ایښودل شوی وي؛ ۲) تیندی، کوندی، کچی، چلی.

ډی (day) ښځ.م. ۱) و ګ. ډنډه کېلک؛ ۲) ووړی، د نوي تغړو هغو اضافه څنډو چې د کار په پای کې پرې کېږي.

ډیابېټ (diyābít) نر.م. و ګ. شکره.

ډیاکروني (diyākroní) نر.م. د کلیمو تحلیل او د هغو د منشأ او ریښې پیدا کونه.

ډیالوګ (diyālóg) نر.م. دیالوګ، ډایلاګ، مکالمه، مباحثه، صحبت.

ډیبک (dibák) نر.م ۱) د سیند د غاړې او چتوالی؛ ۲) ډیبو؛ ۳) مج. خورا ډنګر سړی.

ډیبو (dibó) ښځ.م. ډیبک، تیپو، یو ډول سارایي وره مرغی ده..

ډیبی (dibáy) ښځ.م. لوبځی، خومبری، غوالرشه؛ خاورین لوښی دی چې غوا په کې لوشل کېږي.

ډیپا (depā́) ص. نر.م. ملازم، شاطر، نوکر..

ډیپارټمنټ (dipārtmínt) نر.م. ډیپارټمنټ، دیپارتمنت؛ ۱) څانګه، شعبه، دایره، برخه؛ ۲) اداري تشکیلات؛ ۳) وزارت؛ ٤) ایالت.

ډیپلوم (diplóm) نرم. ډیپلومه، دیپلومه، دپلوم؛ د لوړو تحصیلاتو بري لیک، شهادتنامه. علمي بریالیتوب سند.

ډیپلومات (diplomā́t) نر.م. دیپلومات، ډپلومات ۱) سیاسي نماینده، د سیاسي نمایندګۍ غړی؛ ۲) سیاست پوه، سیاستمدار.

ډیپلوماتیک (diplomātík) ص. نر.م.ج. ۱) دپلوماتیک، دیپلوماتیک، په ډیپلوماسۍ اړوند؛ ۳) هوښیار، څیرک، درایت لرونکی.

ډیپلوماسي (diplomāsí) ښځ.م. دپلوماسي؛ ۱) سیاست؛ ۳) درایت، هوښیاري، څیرکتیا.

ډیپو (dipú) ښځ.م. ګدام، تحویلخانه، زېرمه تون.

ډیچ (dič) نر.م. سامانه، غوره، پرتم، شان، شوکت.

ډیچه (dičá) ښځ.م. مست تېوونه، خرتزی.

ډیډنډی (didanday) ښځ.م. د ګیند یوه لوبه ده.

ډیډا (didā́) ص.نر.م. جاروکښ، جاروکوونکی.

ډیډانه (didā́na) ص. نر.م. ربېغ وهنه، ربېغ وهل.

ډیډم (didam) نر.م. ډډم، یو ډول وابنه دي.

ډیډه (didá) ښځ.م. هغه لرګی او توکر چې د هغو په واسطه دژرندې د محور مېخ پرې ټینګوي؛ ۲) ډزې؛ ۳) خولپوتی؛ ٤) د چلم د دروېو هغه لته یې ګنډه چې د چلم خوله ورباندې پټوي؛ ۵) کېره، کېږی، ؛ ٦) ستېه، بېخ، اساس.

ډېډه (dedá) ... نر.م. ۱) ډېر موړ، تر پزې موړ؛ ۲) ... قانع؛ ۳) ډاډه، مطمئن.

**ډېډې** (dedé) شغ.ج. ۱) د غـوږونو يو ډول والی؛ ۲) د توپکو پرله پسې باړونه او ډزونه.

**ډېر** (der) ص. نر.ج. زيات، پرېمانه، کوټه.

**ډېراړخيز** (derarxíz) ص. څو اړخيز، څو جانبه، څو بُعدي.

**ډېراړخيزروستاړی** (derarxizrūstā́ray) (گر.) ډېر چاري يا گڼ چاري وروستاړی.

**ډېران** (derā́n) نر.م. ۱) ډمبوری، د سرې د اچـولو ځای: ۲) د حيض پاکولو ټوکر؛ ۳) مج. انبار.

**ډېرپازی** (derpā́zay) ص. څـو پازی. گڼ پېښه، گڼ کاری.

**ډېرپورې ژبه** (derpóreža̋ba) گر. گډوله ژبه.

**ډېر پوړيز** (derporíz) ص. څو پوړيز، څوچته.

**ډېرپېښی** (derpésay) ص. ډېر پېښېدونکی، زيات واقع کېدونکی.

**ډېرترډېره** (dertardéra) ص. ډېر زيات، بېخي زيات، خورا زيات، تر اعظمي حده.

**ډېرجوليز** (derjawlíz) ص. څـو جـوليـز، څـو شکلي، څوبڼی.

**ډېرځله** (derźála) ق. ډېر وخت، اکثراً، زياتره.

**ډېرڅانگيز** (dercāngíz) ص. ډېر څانگې، څو شعبه يي، څو رشته يي، څو مسلکي.

**ډېرڅپيز** (dercapíz) گر. څو څپيز، څو هجايي، څو سېلابه.

**ډېرڅښتنی** (dercastánay) ص. پر څو خدايانو گروهمن، مشرک.

**ډېرڅند** (dercánd) ص. څوضلعي، څو څنډی، څو څنډيز.

**ډېروالی** (derwā́lay) نر.م. زياتوالی، زياتوب، ډېرښت، پرېمانتوب، پرېمانوالی.

**ډېرزېږی** (derzézay) ص. ډېرزېږوونکی.

**ډېرژبی** (deržábay) ص. ډېرو ژبو پوهېدونکی.

**ډېرښتي** (derastí) ص. ډېر کيواله، اکثريت.

**ډېرښځمنی** (dersazmánay) ص. د ډېرو ښځو خاوند، څو ښځی.

**ډېرغږی** (dergǎzay) ص. څـو غږی، د څو غږونو يوځايينه.

**ډېرکلن** (derkalán) ص. عمرتېری، عمر خوړلی؛ بوډا.

**ډېرگټی** (dergátay) د ټوليزې گټنې (استفادې) وړ.

**ډېرگړی** (dergáray) (گر.) جمع، د يوگـړيېـدو (عکس).

**ډېرگوټ** (dergwát) ص. ډېرگوتيز، ډېر څنډی.

**ډېرگونديز** (dergondíz) ص. څوگوندي، څو گونديز.

**ډېرليکی** (derlíkay) ص. ډېر ليکونکی.

**ډېرمانيز** (dermāníz) ص. څو مانيز، څومعناييز.

**ډېرمړوښې** (dermaróse) ص. د ډېـرو مړونـو ښځه، څو مړوښې.

**ډېرمغزی** (dermáǧzay) ص. لـه مانا ډک، مغزن، ماناوال، تومنوال.

**ډېرموخی** (dermóxay) ص. څو موخې، څو ډېر مقصدی.

**ډېرمېشتی** (derméštay) ص. گڼ مېشتی، گڼ نفوسه (ښار يا ټولنه).

**ډېرودون** (derwadūn) ا. ډېر ښځمني، د زوجاتو تعدد.

**ډېرول** (derawә́l) مص. مت. زياتـول، پرېمـانه کول.

**ډېرولسي** (derwalasí) ص. گـڼ ولسي، ډېـر ملتي، څو مليتي.

**ډېرى** (ḍeráy) ص. نر. ج. ډېر، خورا زيات، زښت.
**ډېرۍ** (ḍeráy) ښځ. م ۱) وړوکی خټ، کوټه، توپی؛ ۲) د غلې ګدام، زېرمه تون.
**ډېرېدل** (ḍeredә́l) مص. ل. زياتېدل، پرېمانه کېدل، ازدياد موندل.
**ډيزاين** (ḍizā́yn) نر. م. ۱) طرح، سکېچ، خاکه، پلان، د يوه شي ابتدايي يا مقدماتي سکېچ؛ ۲) پلان، سکيم، پروژه.
**ډيس** (ḍis) ص. نر. م. ۱) ډېر موړ؛ ۲) د جوارو غته ډوډۍ؛ ۳) کوټک، دبی؛ ٤) چاغ، پړسېدلی.
**ډيسنتري** (ḍisantrí) ښځ. م. ډېزانتري، ديسانتري خوني اسهال، پېچ، پېچش، د کولمو ناروغي.
**ډېسه** (ḍesá) ښځ. م. ۱) پانته، ډېکه، د جماع په وخت کې مخصوص حرکت؛ ۲) دوکه.
**ډېسې** (ḍesé) ښځ. ج. سپټې، د جوارو وړۍ.
**ډېش** (ḍeš) نر. م. (تن.) دش، ډش، دېش، بېلنی، کش، خطک، فاصله.
**ډيفتانګ** (ḍiftáng) نر. م. دفتانګ، ديفتونګ، مرکب مصوت، هغه غږيز ترکيب دی چې د دوو غږيزو فونيمو څخه لاس ته راځي.
**ډيفتري** (ḍiftari) ښځ. م. و ګ. خناق.
**ډيک** (ḍik) نر. م. چتکی، چتی، پتکی، چتر، يوه وړه، خړه او سرګردانه مرغۍ دی.
**ډيکبند** (ḍikbánd) نر. م. مرغومکه، د يوې لوبې نوم دی.
**ډېکتې** (ḍekté) ښځ. م. ډېکتې، ديکته، په لوړ اواز ويل، املا؛ ۲) امر کول.
**ډيکشنري** (ḍikšanarí) ښځ. م. ډېکشنري، دکشنري قاموس، فرهنګ، د لغاتو کتاب، سيند.
**ډيکليمه** (ḍiklimá) ښځ. م. ډېکليمې، دکلمه؛ ۱) په فصاحت ږغېدنه؛ ۲) قرائت.

**ډيکورېشن** (ḍikurešán) نر. م. ډيکور، دکور، ۱) تزئين، اوډنه؛ ۲) زينت، زېور؛ ۳) پرده.
**ډيګ** (ḍig) نر. م. ډ ګ، د آس په ډ ګ ډګو تګ.
**ډيګ ډيګو** (ḍigḍigó) ښځ. م. د آس ناهمواره او په ډنګ ډوګو تګ.
**ډيګلن** (ḍiglán) ص. نر. م. و ګ. ډوبلن.
**ډيګله** (ḍiglá) ښځ. م. و ګ. ډوبله.
**ډيل** (ḍil) نر. م. ۱) ټال، ځنډ، معطلي، ايسارتيا؛ ۲) دبدبه، پرتم، شان او شوکت.
**ډيل ډول** (ḍilḍáwl) نر. م. سينګار، درشن، فېشن.
**ډيلکو** (ḍilkó) ښځ. م. په موټر کې د يوې آلې نوم دی چې دنده يې د برېښنا وېشنه ده.
**ډيلو** (ḍilaw) نر. م. ځنډ، درنګ، ډيل، معطلي، ايسار.
**ډيل و ډال** (ḍiluḍā́l) نر. م. پرتم، شان او شوکت.
**ډيلول** (ḍilawә́l) مص. مت. ځنډول، معطلول، ايسارول، ټالول.
**ډيله** (ḍíla) ښځ. م. ډيلکۍ، يوه ډېره نازکه ګياه ده چې په جبه زاره ځمکه کې راشنه کېږي.
**ډيلېدل** (ḍiledә́l) مص. ل. ټالېدل، ځنډېدل، معطلېدل، ايسارېدل.
**ډيمبه** (ḍimbá) ښځ. م. يو ډول لرګی (يا کړی) دی چې په هغه باندې د کښتی بېلچه يا جاله تړي.
**ډيموتيک** (ḍimotík) ص. نر. م. دمتيک، د لرغوني مصر يو ډول ساده ليک و.
**ډېموګرافي** (ḍemugrāfí) ښځ. م. ډېموګرافي، دموګرافي، د احصائيې د علم يوه څانګه ده.
**ډينبک** (ḍinbák) نر. م. و ګ. ډېبو.
**ډينډاپ** (ḍinḍā́p) نر. م. نداپ، نداف، ډانډسي.
**ډينغه** (ḍingá) ص. نب. د لارې ملګرى، لاره ښودونکی ملګری.

**ډېنګ** (ḍeng) نر.م. دنګ، د اوبو يو ډول مرغه دی چې مښوکه او پښې يې اوږدې وي.

**ډينګ** (ḍing) نر.م. ۱) د اوبو يو غټ مارغه دی؛ ۲) تالاو، ډنډ؛ ۳) مج. جګ، اوچت (سړی)؛ ٤) ص. نر.م. لاپو، کړتو.

**ډينګار** (ḍingấr) نر.م. غوري، باتې، لاپې شاپې.

**ډينګاز** (ḍingắz) ص. نر.م. ډېر ډنګر، وچ کلک. ډنګر، ډېر خوار.

**ډينګ ډينګو** (ḍingḍingó) ص. نر.م. ۱) خراب تراب (کار)؛ ۲) نا آرامه او ناهموار تګ.

**ډينګرۍ** (ḍingrə́y) ښځ.م. ۱) پوځکی، ګوځی، مرخړی، ستوری، ګوبلکه؛ ۲) و ګ. ډينګلی؛ ۳) دجالې پارو، خوی؛ ٤) ډبلی، دنداپ لرګی؛ دلوخې د تکولو لرګی.

**ډينګله** (ḍinglá) ښځ.م. ۱) پانتېه، هغه حرکت چې سپی يې دسپي سره د يو ځای کېدو په وخت کې کوي؛ ۲) لړزه، لرزه، رپا، ترېدنه.

**ډينګلۍ** (ḍingláy) ښځ.م. و ګ. ډونګله.

**ډينوسور** (ḍenosór) نر.م. (ل. پ.) ډيناسور، دمېسوزويک د دورې د خزندو هر ګروپ چې نن منقرض يا معدوم دی.

**ډېنې** (ḍenáy) نر.م. کاکيشکي يو ډول لوبه ده.

**ډېوالي** (ḍewāli) ص. نب. دېوالي، مفلس، هغه شتمن چې شته يې له لاسه وتلي وي.

**ډيوټ** (ḍiwáṭ) نر.م. ۱) د ډېوې د ابښودلو آله؛ ۲) مو. و ګ. دېوټ.

**ډېوډ** (ḍewáḍ) نر.م. ۱) يو ډول خوشبويه شمع ده؛ ۲) له ختوجوړ څراغ؛ ۳) يو ډول والی، يو راز لښتی (غوړوالی) ده.

**ډېوډۍ** (ḍewḍáy) ښځ.م. ۱) دالان، سوپ، سرپوښلې لاره؛ ۲) د کتاروډ سر ګانګوره.

**ډيو ډيو** (ḍiwḍíw) نر.م. د غوايي د جنسي تحريک اواز؛ دا کليمه هغه وخت کارېږي چې څوک غويي په غوا باندې د ختلو لپاره تحريکوي.

**ډيوډيوکه** (ḍiwḍiwáka) نر.م. ډيبو غوندې يو ډول خړه مرغۍ ده.

**ډيولا** (ḍiwlā́) نر.م. سګ ماهی، کته سپری.

**ډيوه** (ḍiwá) ښځ.م. څراغ، چراغ، د تېلو څراغ، يوه آله ده چې د تياري د رڼا کولو کار ځنې اخلي.

**ډيوه خولی** (ḍiwaxūlay) ص. نر.م. ۱) جينګ خولی؛ ۲) هغه څوک چې بدرنګه خوله ولري.

**ډيوه وال** (ḍiwa wal) ص. بلېښه وال، مشالوال.

**ډيوېز** (ḍiwíz) ص. نر.م. روښان، روڼ، رڼې.

**ډيوېژن** (ḍiwižan) نر.م. ډيويزيون، فرقه، لښکر، هغه لښکر چې درې کنډکه وي.

**ډييه** (ḍiyá) ښځ.م. ډبه، صفه، دکلي د خلکو د ناستې ځای.

# ذ

**ذ** (zāl) نر.م د پښتو الفبې ۲۹ توری دی. د جمل په حساب د ۷۰۰ په مانا دی او په ابجد کې ۲۵ توری گڼل کېږي.

**ذات** (zāt) نر.م. ۱) جوهر، خاصیت؛ ۲) حقیقت؛ ۳) نسل، اصل، ختهه ٤) خاوند؛ ٥) ع. وجود.

**ذات البروج** (zātulburūj) نر.م. په اسمانو کې اتم اسمان.

**ذات البيني** (zātulbaynī) ص. نب. خپلمنځي، په خپل منځ کې، هغه څه چې د خو تنو تر منځ وي.

**ذات الريه** (zāturiya) ښځ.م. سکاروی، سینه و نغل، پنومونی، یوه ناروغتیا ده.

**ذاتي** (zātī) ص. نب. ۱) اصلي، فطري، طبیعي، شاني، خدايي، د ذات، د ماهیت، د حقیقت؛ ۲) د څه اصل، د څه ذات، اصل، اصله

**ذاتیه** (zātiya) ښځ.م. ۱) شخص، شخصیت؛ ۲) فل. د ذهن اصالت (سبجکتیویزم).

**ذاکر** (zākir) فا. نر.م ۱) یادوونکی، ذکر کوونکی، ستایونکی؛ ۲) ع. خدای ستایونکی.

**ذاکره** (zākira) ښځ.م. یاد، حافظه، د حافظې قوه، هغه قوه چې په ذهن کې موضوعات ساتي.

**ذال** (zāl) نر.م. د «ذ» توري تلفظ.

**ذایقه** (zāyiqa) ښځ.م. خوند، مزه، څکه، یو حس دی چې آله یې ژبه ده.

**ذبح** (zabha) ښځ.م. بزل، حلالول، سرپرېکول، کوتل کوتل

**ذبیح** (zabīh) ص نر.م ۱) حلال شوی، ذبح شوی، کوتلی، کوتلی. ۲) د اسماعیل علیه السلام لقب

**ذخیره** (zasīra) ښځ.م (ج. ذخیرې، ذخایر) گودام، انبار، پاسره؛ و گ زېرمه.

**ذراع** (zirā') نر.م. لېچ، لېښ، د څنگلي له سر نه د لاس د منځنۍ گوتې تر څوکې پورې اندازه.

**ذرع** (zárʿ) ښځ.م. د ذراع په وسیله اندازه کول، ګزول.

**ذروي** (zarawí) ص. نب. په ذرې پورې اړوند، اټومي، د اټم.

**ذره** (zará) ښځ.م (ج. ذرات، ذرې) ډېر کوچنی توکی، تر ټولو وړه ټوټه، رچه وړانګه، پلوشه، اټوم.

**ذره بین** (zarabín) نر.م. ۱) هغې کوچنی عدسیې چې ډېر واړه واړه شیان ورسانده لیدل کېږي؛ ۲) مایکروسکوپ.

**ذریعه** (zarisá) ښځ.م. وسیله، وزله، چاره، واسطه.

**ذکاء** (zaká) ښځ.م. هوښ، ځیرکي، څوره، زیاړ، ذکاوت، پوهه.

**ذکر**(۱) (zikár) نر.م. ۱) یادونه، بیان، څرګندونه؛ ۲) دعا، ثنا؛ ۳) لمونځ؛ ٤) ورد.

**ذکر**(۲) (zakár) نر.م. ۱) دګه، د نارینه زېږنی (تناسلي) آلت؛ ۲) نر، د ښځې مقابل.

**ذکي** (zakí) ص. نب. ځیرک، تېزفکره، هوښیار؛ استعداد لرونکی، زیاري، د ذکاوت خاوند.

**ذل** (zil) نر.م. نرمي.

**ذلالت** (zalālát) نر.م. خوارېدل، خوارېدنه، ذلیلېدل، ذلیلېدنه.

**ذلت** (zilát) نر.م. خواري، ذلیل توب؛ خوارېدنه.

**ذلیل** (zalíl) ص. نر.م. خوار، لوېدلی، بې عزته.

**ذلیلتوب** (zaliltób) نر.م. خوارتوب، خواري، لوېدنه، ټيټېدنه، ذلیلېدنه.

**ذلیلول** (zalilawə́l) مص. مت. خوارول، ښکته غورځول، ټيټول، ځپل.

**ذلیلېدل** (zaliledə́l) مص. ل. خوارېدل، سپکېدل.

**ذم** (zam) نر.م. د مدحې خلاف، غندنه، غندل.

**ذمه** (zimá) ښځ.م ۱) په ځان فرض، په غاړه، ولکه؛ ۲) امانت؛ ۳) عهده؛ ٤) پیمان؛ ٥) ژبه، قول.

**ذمه وار** (zimawā́r) ص. نر.م. ج. مسوول، په ځان فرض ګڼونکی، په عهده منونکی.

**ذمه واري** (zimawārí) ښځ.م. ضمانت، په عهده منته، تړو ورته وهنه.

**ذمي** (zimí) ص. نب. هغه څه چې د چا پر ذمه وي.

**ذوالجلال** (zoljalā́l) نر.م. د پرتم څښتن، د جاه و جلال خاوند، د لويي څښتن.

**ذوالقافیتین** (zolqāfiyatáyn) ص. نر.م. ج. تشریع، هغه نظم چې دوې قافیې په کې خوا په خوا راشي.

**ذوالقرنین** (zolqarnáyn) ص.نر.م. ۱) د دوو ښکرو خاوند؛ ۲) د سلطان سکندر یو صفت دی.

**ذوب** (zawb) نر.م. ۱) ویلونه، اوبه کونګ، اوبونه؛ ۲) سره ایله کېدنه.

**ذوبان** (zawbā́n) نر.م. ویلېدنه، اوبه کېدنه، سره ایله کېدنه.

**ذوبحرین** (zo bahráyn) ص. نر.م. ج. (بد.) ذوالوزنین، ملون، هغه شعر چې د عروضي بحرو په دوو بحرو کې ویل کېدای شي.

**ذوجنسین** (zojinsáyn) ص. نر.ج. هغه ګلان چې نرینه او ښځینه تخمونه لري.

**ذوحیاتین** (zohayātáyn) ص. نر.ج. (زو.) دوه ژوندی، ذومعیشتین، هغه ژوی چې په اوبو او وچه دواړو ژوند کولای شي.

**ذوق** (zawq) نر.م. ۱) څکنه، څکل؛ ۲) طبع، توه، سلیقه، خوښه، شوق؛ ۳) خوښي، نشاط.

**ذوقمن** (zawqmán) ص. نر.م. ذوقي، شوقمن، د ذوق او سلیقې خاوند.

**ذولسانین** (zolisānáyn) ص. نر.م. ج. (بد.) ذوالغتین، ملمع، هغه شعر ته وایي چې په دوو ژبو ویل شي.

**ذووجهین** (zowajhayn) ص. نر.م. (بد.) ابهام، هغه ادبي صنعت چې د يوه نظم يا نثر په کليمو کې د دوو متقابلو مانا گانو احتمال موجود وي.

**ذهن** (zehn) نر.م. (ج. ذهنونه، اذهان) ۱) فهم، درک، فکر؛ ۲) عقل، هوښيارتيا، څوره، ځره.

**ذهني** (zehní) ص. نب. د ذهن، د فکر، د عقل، فکري، عقلي، د فهم.

**ذهنيت** (zehniyát) نر.م. فکر، نظر، عقيده، د تفکر طرز.

**ذهول** (zŭhúl) نر.م. هېره، غفلت، له ياده وتنه، ع. له ځانه بې خبري يا غفلت.

**ذهين** (zahín) ص. نر.م. ځيرک، څور، ذکي، هوښيار، زيارسی، فهيم.

**ذيحق** (ziháq) ص. نر.م. د حق خاوند، مستحق، حق لرونکی.

**ذيروح** (zirúh) ص. نر.م. ج. ساکښ، د اروا خاوند روح لرونکی.



**ر** (re) ښځ.م. د پښتو الفبې اوولسم توری دی، د جمل په حساب د ۲۰۰ عدد ښيي.

**را** (ra) مخ. ۱) د فعلونو سره د مختاړي په ډول راځي او د متکلم طرف ښيي - راکړه؛ ۲) د راکړه لنډيز؛ ۳) نر.م. مو. د کومل دوهم سُر دی.

**رااچول** (raačawə́l) مص. مت ۱) راغورځول، راشړل، ۲) رانسکورول، له مقامه پرې ایستل.

**رااخیستل** (raaxístə́l) مص. مت. ۱) راپورته کول، راجګړل؛ ۲) اخیستل، اخستل، رانیول؛ یو شی په بیه یا قیمت سره اخیستل.

**رااستول** (raastawə́l) مص. مت، رالېږل، هغه څه چې د یوه ځا یا خوا له لوري رالېږل کېږي.

**راایستل** (raistə́l) مص. مت، راباسل، راوښکل، راوباسل، رابهرته کول؛ ۲) اختراع کول.

**راایسته** (raísta) نر.م. ج. ۱) راوښکه، رابهرته کاره؛ ۲) ق. دېخوا؛ ۲) رانیږدې، رانژدې.

**راایسته کول** (raistakawə́l) مص. مت. ۱) رادېخوا کول؛ ۲) رانیږدې کول؛ ۳) لیرې کول، برطرفه کول، له مقامه غورځول.

**رابرسېره** (rābarséra) ص.نب. رابښکاره، ظاهر، راڅرګند..

**رابطه** (rābitá) ښځ.م. ۱) اړیکه، اړیکې، اړه؛ ۲) ګر. هغه کلیمه چې مسند د مسند الیه سره مربوطوي، لکه (دی) په (دا کتاب دی) کې.

**رابلل** (rābalə́l) مص. مت، راغوښتل، رابولل، دعوتول، ځان ته راغوښتل.

**رابلنه** (rābaləna) ښځ.م. (ج. رابلنې) راغوښتنه، رادعوتونه.

**رابیا** (rābyá) ښځ.م. د اوبو لوی مشک.

**رابېرته** (rābérta) ق. رادېخوا، رادې پلو، راایلې، راشېټه، روالې، راوروسته؛ ۲) راهیسې، راهیلې؛ ۳) راخلاصونه، بېرته کول.

**راببل** ( rābél ) ص. نر.م. ج. ۱) راجلا، راگوښی، رااليده؛ ۲) نر.م. و گ. رمبېل.

**راپ** (rāp) نر.م. د ينجي په څېر يو ډول نبات دی چې ژېړ گل کوي..

**راپاتې** (rāpáte) ص. نب. ۱) باقي، پاتې شوی، راپاته؛ ۲) بار شوی؛ ۳) ميراث.

**راپاڅول** ( rāpācawál ) مص. مت. ۱) راجگول، راوينبول، راپورته کول، ۲) تحريکول، لمسول.

**راپاڅېدل** ( rāpācedál ) مص. ل. ۱) راپـورتـه کېدل، راجگېدل، راوينبېدل،؛ ۲) تحريکېدل، لمسېدل.

**راپدېخوا** ( rāpadexwā́ ) ق. راهيسې، رادېخوا، را په دې خوا، راوروسته.

**راپرځول** ( rāparǰawál ) مص. مت. و گ. راپرزول.

**راپرزول** ( rāparzawál ) مص. مت. ۱) راغورځول، ښملول، رانسکورول؛ ۲) مج. مغلوبول، ماتې ورکول.

**راپرزېدل** ( rāpərzedál ) مص. ل. ښملاستل، راغورځېدل، راښملاستل، رانسکورېدل، په غېږو نيولو کې راغوزارېدل يا ښملاستل

**راپرېيستل** ( rāpreyastál ) مص. مت. راښملول، راغورځول، راپرزول، ښملول، په غېـږو کې پر ځمکه راغوزارول يا راغورځول.

**راپسې** ( rāpasé ) ق. ۱) ترشا، راوروسته، راترشا، راترڅنګ؛ ۲) تعقيب، څارنه.

**راپور** ( rāpór ) نر.ج. ۱) رپوټ، رپورټ، راپوټ، راپورت؛ خبر، اطلاع، روايت؛ ۲) جاسوسي.

**راپورتاژ** ( rāportāž ) نر.م. رپورتاژ، ۱) خبريالي، پېښليک؛ ۲) د يوې پېښې يا چارې د جريان شرحه چې خبريال يې د ورځپاڼې، راډيو يا... ته تهيه کوي.

**راپورتر** ( rāportár ) نر.م. ۱) رپورټر، خبريال، خبرتولوونکی، خبرنگار؛ ۲) و گ. رپوټچي.

**راپورته** ( rāpúrta ) ق. ۱) راجګ؛ ۲) تحريک شوی، لمسولی.

**راپورې** ( rāpóre,i ) ق. ۱) رنې، رابانډې؛ ۲) دې خوا، دې غاړې؛ ۳) تړل، بندول، تړلې؛ ۳) په ناروغۍ مبتلا، اخته، گرفتار.

**راپورې کول** ( rāporekawál ) مص. مت. ۱) راپورې ايستل، له سيند نه راپورې باسل؛ ۲) متکلم تورن کول؛ ۳) متکلم په ناروغۍ اخته کول؛ ۴) تړل، بندول، کلکول (د دروازې يا کړکۍ).

**راپېردل** ( rāperdál ) مص. مت. رااخيستل، راتولول

**راپېرل** ( rāperál ) مص. مت. ۱) د يوه شي رانيول، يو شي اخيستل؛ ۲) د متکلم لپاره اندېرې او پوزې اوبدل يا جوړول.

**راپېښېدل** ( rāpeṣedál ) مص. ل ۱) راپيدا کېدل، راواقع کېدل؛ ۲) اتفاقي راتلل او مخامخ کېدل، مخې ته راتلل.

**راتب** ( rātíb ) ق. ۱) تل، همېشه، دايم، ثابت؛ ۲) معاش، مستمري، څېره، زيره.

**راتگ** ( rātág ) ف. راتلنه، دورتگ مقابل.

**راتلل** ( rātlə́l ) مص. ل. راتگ کول، د تلل مقابل، د بله ځايه دې خوا راتگ کول.

**راتلنه** ( rātlə́na ) ښځ.م. راتگ، راتلنگ.

**راتلونکی** ( rātlúnkay ) فا. نر.م (ج. راتلونکي) هغه څوک چې له بله ځايه راحي يا راروان وي.

**راتلونکې** ( rātlúnke ) ص. راروانه زمانه، مهال، گانده، گاندمهال.

**راتلونی** ( rātlúnay ) نر.م. ۱) راتلونکی، د راتلو په حال کې؛ ۲) آينده، مستقبل.

راتله (rātlá) نسر.ج. ۱) راتگ، راتلگ؛ ۲) ف. د راته مؤنث، هغه ښځه چې په تېر وخت کې یې استمراري فعل اجرا کړی وي.

راتویېدل (rātoyedə́l) مص.ل. ۱) له لوړه ځایه د مایعاتو یا پاټراغورځېدل؛ ۲) رابښکته کېدل.

راټول (rāṭól) ص. نر.م.ج. عونډ، سره یوځای، یو ځای، گډ. گرد. جمع.

راټولوالی (rāṭolwā́lay) نسر.م. راغونډوالی، رایوځای والی، گرډوالی.

راټولول (rāṭolawə́l) مص. مت. ۱) راغونډول، رایوځای کول، یو لاس کول.

راټولېدل (rāṭoledə́l) مص.ل. ۱) ټولېدل، راغونډېدل، یوه ځای ته راجمع کېدل؛ ۲) یو لاس کېدل، متحد کېدل.

راټیټول (rāṭiṭawə́l) مص.مت. ۱) رابښکته کول، ټیټول؛ ۲) له یو جگ مقام څخه راغورځول؛ ٤) څوک خپل ځان ته اړ باسل یا تابع کول.

راټیټېدل (rāṭiṭedə́l) مص.ل ۱) رابښکته کېدل، ټیټېدل؛ ۲) له خیلې خبرې تېرېدل؛ ۳) له لوړ مقام څخه راغورځېدل؛ ٤) بل چا ته اړېدل.

راج (rāj) نر.م. ۱) حکومت، واکداري، سلطنت؛ ۲) شتمني، دارایي؛ ۳) بنا، ختگر، معمار.

راجستر (rājistár) نسر.م. رېجستر، راجستر؛ اندراج، هغه کتاب یا لیست چې نومونه، پېښې او ... په کې ثبت او درج شوي وي.

راجع (rājíʾ) ق. ۱) راگرځېدونکی؛ ۲) ورگرځونه، ورگرځېده، ستنېده؛ ۳) حواله، مخامخونه؛ ٤) په باره کې.

راجگول (rājagawə́l) مص. مت. ۱) رااوچتول، راپورته کول؛ ۲) په پښو درول، ۳) لکول، نیغول؛ ٤) المسول؛ ۵) راچوخول.

راچاپېر (rāčāpér) ص. نر.م.ج. راتاو، گرچاپېر.

راچورلول (rāčūrlawə́l) مص. مت. راگرځول، چورلول، راڅرخول، راتاوول، راگرځول.

راچوړول (rāčūṛawə́l) مص. مت. راتویول، راچپه کول، مایعات راتویول.

راچوړېدل (rāčūṛedə́l) مص.ل. راتویېدل، رابهېدل، راچپه کول.

راځغستل (rājağastə́l) مص.ل. رازغستل، رامنډې کول، په منډو منډو دې خواته راتلل.

راځغلول (rājğalawə́l) مص. مت ۱) رازغلول، را په منډه کول؛ ۲) پسې راا خیستل.

راڅخه (rācáxa) راسره، راشکه، راسکه.

راڅکل (rāckə́l) مص. مت. راڅکول، څکول، راکشول، یو شی خپلې خواته رابښکل.

راڅکول (rāckawə́l) مص. مت. راڅکل، ځان خواته راکش کول، راکېږل، روښېول.

راڅکونی (rackū́nay) نر.م. ۱) جلو، واګې اکوړی؛ ۲) راکشوونکی؛ ۳) اختط فوونکی، تښتوونکی؛ ٤) راڅلېدونکی.

راڅکېدل (rackedə́l) مص.ل. ۱) راکشېدل، په ځمکه راکش کېدل؛ ۲) راخوځېدل.

راحت (rāhát) نسر.م. ارامي، ارام، هوسايي، اسودگي، استراحت.

راخبرول (rāxabrawə́l) مص.مت. ۱) رابلل، په خبرو یا اطلاع سره د متکلم پلو ته راغوښتل؛ ۲) رالمسول؛ ۳) پوهول، او بیدارول.

راخبرېدل (rāxabredə́l) مص.ل. ۱) رابلل کېدل، اطلاع وررسېدل؛ ۲) رالمسېدل؛ ۳) پوهېدل.

راخپرول (rāxparawə́l) مص.مت. ۱) رانشرول، خورول، خپورول؛ ۲) تیتول؛ ۳) راشړل؛ ٤) شیندل کېدل

**راختل** (rāxatál) مص. ل ۱) راولاړېدل، رابېکاره کېدل؛ ۲) له پاسه ودرېدل، وربانديې درېدل.

**راخلاصول** (rāxlāsawál) مص. مت. ۱) خوشې کول، راپرېښودل؛ ۲) بېرته کول، پرانستل.

**راخلاصېدل** (rāxlāsedál) ۱) خلاصېدل، خوشې کېدل، پرېښودل؛ ۲) بېرته کېدل، وازېدل.

**راخورول** (rāxwarawál) مص. مت. ۱) تیتول، خپرول، خورول؛ ۲) غوړول، اوارول.

**راخورېدل** (rāxworedál) مص. ل. ۱) تیتېدل، خپرېدل، خورېدل؛ ۲) غوړېدل، اوارېدل.

**راخېژول** (rāxežawál) مص. مت. ۱) راپورته کول، راجگول؛ ۲) راسپرول، سورول.

**رادار** (rādár) نر. م. ۱) د الکترانیکو څپو سره د فلزي شیانو د فاصلې د ټاکلو آله؛ ۲) ص. نر. م. ج. راداره، لیکې لیکې، خط خط.

**رادرومل** (radrumál) مص. ل. ۱) رامنډې کول، راتلل؛ ۲) دې خواته راتلل.

**رادمخه** (rādamáxa) ق. رامخکې، په مخکې.

**رادو** (rādaw) ف. راځغله، رامنډه کړه، راشه.

**راده** (rādá) ښځ. م. ۱) هغه عمودي یا افقي یا قوسي اوږد خط چې په صیقل شوي فلز کې د رڼا په وسیله لیدل کېږي؛ ۲) رنګه کرښه، رنګه خط؛ ۳) ص. نب. پټې پټې اس؛ ٤) نر. م. رود، سیند.

**رادې پلو** (rādépalaw) ق. رادېخوا، دې خواته، دې څنګ ته، رادې لوري ته.

**راډیو** (rāḍiyó) ښځ. م. (ج. راډیوګانې، راډیووې) رادیو، ربډیو؛ رسېور، اخیستونکې دستګاه، هغه برقي آله چې د استوونکې دستګاه څخه خپلې څپې اخلي او هغه په اواز تبدیلوي.

**رارسول** (rārasawál) مص. مت. ۱) رسول، له بل ځای څخه دې ځای ته راوړل، را انتقالول؛ ۲) وارد ول، له سرحده راتېرول.

**رارسېدل** (rārasedál) مص. ل. ۱) رسېدل، له بله ځایه راتلل: راوارد ېدل، را انتقالېدل.

**راړه** (rārá) ښځ. م. ۱) ګډوله ډوډۍ، ګډوډه ډوډۍ؛ ۲) نر. م. غوخه، بروړه، یو ډول زهر لرونکې خزنده ده چې په بزرو کې پیدا کېږي.

**راز** (rāz) نر. م. ۱) سر، پټه خبره؛ ۲) یو ډول نبات دی چې اړې اړې پاڼې لري؛ ۳) اد. ۱) قسم، ډول؛ ۲) غوندې، په شان.

**رازدار** (rāzdár) ص. نر. م. راز ساتونکی.

**رازق** (rāzíq) ص. نر. م. رزق رسوونکی، روزي رسان، د لوی څښتن جل جلاله یو صفت دی.

**رازل** (rāzál) مص. مت. ۱) ډولې کول، سینګارول؛ ۲) عزت کول، درناوي کول، لمانځل.

**رازلی** (rāzálay) مف. نر. م ۱) ډولې شوی، سینګار شوی؛ ۲) عزت ورکول شوی.

**رازونیاز** (rāzunyáz) نر. م. د زړه خواله، مینې او ناز خبرې، د سر خبرې، د عجز عبادت.

**راژوندی** (rāžwandáy) ص. نر. م (ج. راژوندي) ۱) بېرته ژوندی شوی؛ ۲) راویښ.

**رأس** (rās) ق. ۱) سر، د یوه شي لوړنۍ برخه؛ ۲) د قوم مشر، لاربنود سرکښې؛ ۳) د څارویو د شمېر سره هم ویل کېږي.

**راساً** (rāsán) ق. مستقیماً، نېغ په نېغه.

**راس الخط** (rāsolxát) نر. م. د پنځو کرښو څخه یوه کرښه ده چې د الفونو، لامونو، کاف او رې سرونه په کې شامل دي.

**راست** (rāst) ص. نر. م. ۱) ښی؛ ۲) سم، نېغ؛ ۳) رښتین.

**راستکار** (rāstkár) ص. نر. م. ۱) سپین، صادق؛ ۲) امانتکار؛ ۳) راستمن.

**راستمن** ( rāstmán ) ص. نر.م ۱) صادق، سپین؛ ۲)امانتکار.

**راستنول** ( rāstanawə́l ) مص. مت. و گ. ستنول.

**راستنېدل** ( rāstanedə́l ) مص. ل. و گ. ستنېدل.

**راستون** ( rāstū́n ) ص. نر.م. (ج. راستانه) بېرته راغلی، راگرځېدلی، راغبرگ.

**راسته** ( rāstá ) ښځ.م. ۱)کیله، رسته، کنار، لین؛ ۲)ص. نب. ۱)ښي، د کیڼ ضد؛ ۲)سم، نېغ.

**راستي** ( rāstí ) ښځ.م. صداقت، ایمانداري.

**راسخ** ( rāsíx ) ص. نر.م. ثابت، کلک، استوار.

**راسره** ( rāsará ) راځخه، راشکه، له ما سره.

**راسن** ( rāsán ) نر.م ځوري، راشن، خوراکه، اذوقه، د خوراک شیان، تایه، زری، خورومه.

**راسه** ( rā́sa ) ف. راشه، روځه، راځه، ارځه.

**راسې** ( rā́se ) ق. راهیسې، راپه دې خوا، له هغه وخته.

**راسي** ( rā́se ) ف. راشي، راځي.

**راش** ( rāš ) نر.م. راشه، رشه، ؛ هغه درمند چې تیار او پاک وي او اخستلو ته آماده وي.

**راشبېل** ( rāšbél ) نر.م. و گ. ږږگی.

**راشتلی** ( rāštaláy ) نر.م. تلی، رېشتلی، د غلې هغه ناپاکه برخه چې په درمنده کې له راشې ځخه پاتې کېږي.

**راشه** ( rā́šá ) ښځ.م. ۱)رشه، راش، رېشه، د غنمو رېشه، ارپاسه؛ ۲) ف. راسه، راځه، ارځه.

**راشه درشه** ( rāšadáršá ) ښځ.م ۱)سلوک، گذاره، دار ومدار؛ ۲)تگ راتگ، تله راتله.

**راشی** ( rā́šáy ) نر.م. ربړ، رېخ، برف کوچ، ایمال.

**راشي** ( rā́šī ) ص. نب. رشوت ورکوونکی.

**راشیتیزم** ( rāšitízəm ) نر.م. راشیتیس، د هډوکو د نرمۍ ناروغي ده.

**راشیندل** ( rāšində́l ) مص. مت. راشنل، رانوستل، راتیتول، راپاشل.

**راښکل** ( rāṣkə́l ) مص. مت. ۱) راکښل، راکاږل؛ ۲)راوباسل؛ ۳)نر.م. یو ډول غرنی ونه ده.

**راښکو** ( rāṣkó ) ښځ.م. هغه آله چې فلزي سیمونه پرې نري کېږي.

**راښکوبی** ( rāṣkóbay ) نر.م. راکښوبی، د اوبو د رااېستلو ماشین.

**راښکول** ( rāṣkól ) نر.م. راکول، کپړ، منداوو. گاښور، غوښوور، غاښور..

**راښکون** ( rāṣkū́n ) نر.م. راښکنه، راکاږنه، کشونه، راباسنه، راکشونگ.

**راښکه** ( rāṣká ) نر.ج. ۱)راوښکه، راوېسته، راباسه؛ ۲) ف. راښکنه، راکش کاوه، د راښکل استمراري ماضي.

**راښودل** ( rāṣodə́l ) مص. مت. و گ. ښوول.

**راضي** ( rāzí ) ص. نب. ۱) رضا، خوښ، قانع؛ ۲)ډاډه، مطمئنه.

**راضي نامه** ( rāzināmá ) ښځ.م ۱) مراضات پانه ۲)جوړه، روغه، موافقه، خوښنه.

**راغ** ( rāǧ ) نر.م ۱)ځرځای، ورشو؛ ۲)سارا، دښته؛ ۲)د غره لمن.

**راغب** ( rāǧíb ) ص. نر.م. مایل، غوښتونکی، هڅو، علاقمند، هڅونکی.

**راغبرگ** ( rāǧbárg ) ق.. ۱) راستون، راگرځېدلی، بیا راغلی؛ ۲)غبرگ، کت شوی، قات شوی.

**راغبرگول** ( rāǧbargawə́l )مص.مت. ۱)راستنول، راگرځول؛ ۲)کتول، قاتول، غبرگول.

**راغلی** ( rāǧálay ) فا.نر.م. (ج. راغلي) راغبرگ شوی، رارسېدلی، راستون شوی.

**راغورځول** ( rāǧurǰawə́l ) مص.مت. و گ. غورځول.

**راغورځېدل** (raǧurjedə́l) مص. ل. و ګ. غورځېدل
**راغوښتل** (rāǧwastə́l) مص. مت رابلل، غوښتل، څېلې خواته رابلل.
**راغونځول** (rāǧunǰawə́l) مص. مت. ۱) کتېول، ۲) د ګڼو خلکو، رمو او ... غونډېدو داسې حالت چې ځنګ په ځنګ وي او حرکت ورکړی شي.
**راغونځېدل** (rāǧūnǰedə́l) مص. ل. ۱) کتېدل؛ ۲) خوځېدل، زومبېدل.
**راغونډ** (rāǧónd) ص. نر.م. ج. ۱) راپنډ، راټول، غونډ، یو ځای؛ ۲) ګرد، ګردی، ګړدی.
**راغه** (rāǧá) نر. ج. ۱) د غره لمن، د غره غاړه؛ ۲) سارا، رغه، صحرا، دښت، ډاګ.
**راغی** (rāǧáy) فا. نر.م. و ګ. راغلی.
**رافض** (rāfíz) نر.م. (ج. رافضه) پرېښودونکی، ترک کوونکی، له لارې اوښتونکی.
**رافع** (rāfíʿ) نر.م ۱) اړمی، اړم؛ ۲) رفع کوونکی، لیرې کوونکی؛ ۳) عارض.
**راقم الحروف** (rāqimulhurū́f) نر.م. ۱) رقم، لیکوونکی، کښوونکی؛ ۲) د خطاطۍ د یوې قطعې یا کوم کتاب لاس لیکوونکی.
**راقي** (rāqí) نر.م. عقیق، قیمتي غمې. راکي.
**راک** (rāk) نر.م. راګ، له سنیو څخه جوړ شوی پتلون ډوله لباس چې د شپې په څېر زېږ وي او د پرتوګ کار ترې اخلي.
**راکاږل** (rākāžə́l) مص. مت. راوښکل، راباسل، له ښکته څخه راپورته کول او راایستل.
**راکټ** (rākít) نر.م. (ج. راکټونه) توغندی، توغېدونکی سېستم، ارتاوېدونکې آله.
**راکد** (rākíd) ص. نر.م. ج. ۱) بې حرکته، آرام، ثابت؛ ۲) کورم، ډم، ولاړې (اوبه).

**راکړه** (rākṛá) ښځ.م. ۱) اخستنه، له بل چا څخه د یو شي د اخستنې عمل؛ ۲) ف. راکه. روکه. مخاطب ته د راکولو امر.
**راکړه درکړه** (rākṛadárkṛa) ښځ.م. راکړه ورکړه معامله، ورکول اخستل.
**راکړی** (rākáṛay) مف. نر.م. متکلم ته ورکړی یا ورکړل شوی یا ورتسلیم شوی.
**راکس** (rākás) نر.م. د غوبل په غوبانو کې منځنی غوبي ته ویل کېږي.
**راکش** (rākáš) ق. ۱) راکښ، راښکل شوی راځکېدلی؛ ۲) راځکول شوی.
**راکښته** (rāksáta) ق. ۱) راکوز، رالاندې، ښکته تېټ؛ ۲) مخاطب ته د راکښته کېدلو امر.
**راکښل** (rāksə́l) مص. مت ۱) راایستل، راباسل؛ ۲) کشول، کش کول، ځکول.
**راکښو** (rākṣó) ا. و ګ.: راښکو
**راکښوبی** (rākṣóbáy) واټرپمپ: اوبو راایستلو ماشین.
**راکښون** (rākṣūn) ا. و ګ.: راښکون.
**راکښون ځواک** (rākṣūnzwā́k) ا. د راکښون قوه، جاذبه قوه.
**راکوزول** (rākūzawə́l) مص. مت. و ګ. کوزول.
**راکوزېدل** (rākūzedə́l) مص. ل. و ګ. کوزېدل.
**راکول** (rākól) نر.م. و ګ. راښکول.
**راکول** (rākawə́l) مص. مت. رااخیستل، له مقابل طرف څخه د یو شي ترلاسه کول.
**راکوونکی** (rākawúnkay) نر.م. راسپارونکی، راتسلیموونکی، د ورکوونکي مقابل.
**راکي** (rāki) ښځ.م. راقي، عقیق، قیمتي غمې
**راګ** (rāg) نر.م. مو. راګا، ګرام؛ ۱) سندره، نغمه، سرود؛ ۲) عیش، طرب؛ ۳) آهنګ، تون

۴) پرده؛ ۵) مقام، د موسیقی مقام.

**راګرځول** (rāgarʒawә́l) مص. مت. راستنول، راګرزول، راواپس کول، په شا راستنول.

**راګرځېدل** (rāgarʒedә́l) مص. ل. راستېندل، راواپس کېدل، بېرته راتلل.

**راګني** (rāganí) ښځ. م. د موسیقی شعبه، د موسیقي د راګ یا مقام ښځه، ثانوي راګونه.

**راګیر** (rāgír) ص. نر. م. ۱) راحصار، راایسار، رابند، منبتي؛ ۲) دوچار، اخته.

**رال** (rāl) نر. م. د چرګې د هګۍ غوړي.

**رالره** (rālará) اد. راله، راته، ماته، زما لپاره.

**رالېږل** (rālezә́l) مص. مت. رااستول. لـه مقابله لوري دې خواته رااستول، دورلېږل مقابل.

**رام** (rām) ص. نر. م. ج. تابع، مطیع، ایل.

**رامبېل** (rāmbél) نر. م. رابېل، رانبېل؛ یو ډول ګل دی چې ډېر په زړه پورې بوی لري

**رامښت**[1] (rāmaṣt) ص. نر. م. ډولي، ښایسته، ښکلی، د بدرنګ مقابل.

**رامشت**[2] (rāmíšt) نر. م ۱) سرود؛ ۲) عیش.

**رامشتګر** (rāmišt́gár) ص. نر. م. سندرغاړی، سندرې کوونکی، بدله ویونکی.

**رامزدګی** (rāmizdagáy) نر. م. هغه غـونډ منډ لرګی چې د ژرندې پل پرې ګرځي.

**رامکان** (rāmakā́n) نر. م. پټو، وړین ټادر.

**راموسی** (rāmū́say) نـر. م. هغې غـوسۍ چې مشک ترې لاس ته راځي.

**رانجن** (rānján) ص. نر. م. ج. تیـاره، تت، تیاره وزمه، تیاره غونی.

**رانجونونی** (rānjū́nonáy) ښځ. م. رانجـومـه، رجړومه، رنجـړومه، رېنجـومه، د رنجـو وړه کڅوړه.

**رانجه** (rānjá) نر. ج. انتي موني، یو راز کیمیاوي ماده او کاني توره ډبره ده چې د ښکلا او د دوا په توګه په سترګو پورې کېږي.

**رانځړه** (rānʒrá) جن. رنځړه، ننځړه، ځړنه، لنځړه.

**راندېمان** (rāndemā́n) نر. م. محصول، حاصل، لاس ته راوړل.

**رانسکورول** (rānaskorawә́l) مص. مت. ۱) راچپه کول، پړمخ کول؛ ۲) راڅملول؛ ۳) ماتې ورکول.

**رانغاړل** (rānğāṛә́l) مص. مت. ۱) راغړل، نغاړل، راتـاوول؛ ۲) هـر شی په خوله منډل؛ ۳) مج. حرص کول.

**رانګن** (rāngán) نر. م. رنګان، بکیانه، یو ډول ونه ده چې ډول ترخې داني نیسي.

**راننواته** (rānanawātá) نر. ج. داخلېده.

**راننوتل** (rānanawatә́l) مص. ل. راداخلېدل، دننه راتلل.

**رانه** (rā́na) اد. راڅخه، له مانه، زما څخه.

**راننه یستل** (rānanayastә́l) مـص. مت. ننه ایستل، راداخلول، رانننه کول.

**رانیول** (rāniwә́l) مص. مت ۱) په لاسونو کې نیول ۲) اخیستل، په بیه اخستل.

**رانه** (rāṇá) ص. نر. ج. دروڼ جمع ده.

**راواته** (rāwātá) نر. ج. د ورشنې راواته، رابهرته کېده، د باندې راواته، د باندې راتګ، خروج.

**راوتل** (rāwatә́l) مص. ل. ورشنې راتلل، ښېدیا ته راتلل، راخارجېدل، د باندې راتلل.

**راوتکی** (rāwátkay) نر. م. ورکوټی دالان، ورکوټی دهلېز، کوچنی کوشکن.

**راوړل** (rāwṛә́l) مص. مت. ۱) یو شی له یوه ځای څخه بل ځای ته راانتقالول؛ ۲) زېږول.

**راوړه** (rāwṛá) نر. ج. ۱) رانقلاوه؛ ۲) زېږاوه.

**راوستل** (rāwastə́l) مص. مت. رالیږدول، یو ساه لرونکی په خپلو پښو، یا یو بې ساه خپلې خواته رانقلول.

**راولاړېدل** (rāwalāṛedə́l) مص. ل. ۱) راپاڅېدل، راجګېدل؛ ۲) ویښېدل؛ ۳) راپارېدل؛ ٤) مج. جنګېدل، جګړه کول.

**راوه** (rāwá) ښځ.م. ملهم، مرهم، هغه دوا یا دارو چې په زخم یا ټپ اېښودل کېږي.

**راوي** (rāwí) ص. نب. روایت کوونکی، نقل کوونکی (فق.) هغه څوک چې حدیث رانقلوي.

**راوېستل** (rāwestə́l) مص. مت. راوښکل، راایستل، رایستل، راباسل.

**راهب** (rāhíb) نر.م. (ج. راهبان) نصارا، عابد او پارسا، دیري، څوک چې په دیرکې عبادت کوي.

**راهدار** (rāhdā́r) ص. نر.م. ج. ۱) رادار، لیکي لیکي؛ ۲) تانه دار، لاره ساتونکی.

**راهداري** (rāhdārí) ښځ.م. لارپانه، د لارې یا پولې د تېرېدلو اجازه لیک.

**راهسکېدل** (rāhaskedə́l) مص. ل. ۱) راپاڅېدل، راولاړېدل؛ ۲) راختل، راښکاره کېدل.

**راهیټ** (rāhíṭ) ص. نر.م ۱) مالت مشر، کندیدار، کلانتر، د کلي مشر؛ ۲) ملک، خان.

**راهیسته** (rāhistá) ق. ۱) رادېخواته، رادې پلو ته؛ ۲) له هغه وخته، له هغه راهیسې.

**راهیسې** (rāhíse) ق. له هغه وخته، دهغه راایسې، راایسې، رادېخوا.

**رای** (rāy) ښځ.م. ۱) وګ. رایه؛ ۲) د لرغوني هند د واکمنانو لقب.

**رایج** (rāyíj) ص. نر.م. ج. مروج، رواج شوی، عام شوی، جاري شوی.

**رایستل** (rāyistə́l) مص. مت. یستل، راایستل، رایېستل، راویستل، د باندې خارجول.

**رایسته** (rāyísta) ق. رادېخوا، دېخواته، دې پلو.

**رای ګیري** (rāygirí) ښځ.م. رایه اخیستنه، رایه ورکول، رای ورکول.

**رای ورکړه** (rāywárkṛa) اِ. رای ورکونه، رای ورکول.

**رایه** (rāyá) ښځ.م. (ج. رایې) ۱) اند، فکر، رای؛ ۲) ګروهه، عقیده، اعتقاد؛ ۳) د زړه بصیرت؛ ٤) تدبیر.

**رایه اخیستنه** (rāyaaxistə́na) اِ. رایه یا نظر اخیستل، سند اخیستل.

**رئیس** (rayís) نر.م. رییس، مشر؛ ۱) د قوم لوی او سرپرست؛ ۲) د اجرائیه قوې مشر؛ ۳) د یوه ریاست، محکمې، شرکت او ټولنې مشر.

**رب**[1] (rab) نر.م. ۱) مالک، څښتن؛ ۲) مصلح؛ ۳) پالونکی، پالونی.

**رب**[2] (rub) نر.م. د مېوې ایستل شوي اوبه چې د ایشولو وروسته ټینګې شي.

**ربا** (ribā́) ښځ.م. سود، ګټه، سوایي، (فق) هرې فاسدې بیعې ته ربا وایي

**رباب** (rabā́b) نر.م. د ساز یوه تاریزه آله ده.

**رباط** (rabā́t) نر.م. ۱) پړاو، هغه واټن چې د شپږو کروه سره معادله وي؛ ۲) هغه تمځایونه (کاروانسرای) چې په یوه اوږده لارکې واقع وي.

**رباعي** (rubā́ʕí) ښځ.م. ۱) څلوریزه، هغه شعر ته وایي چې څلور مسرې (مصرع) ولري.

**رب النوع** (rabunnáwʕ) ښځ. ز.م. د الهې (الهه) یا ربة النوعي مقابل، څانګړی خدای.

**رباني** (rabāní) ص. نب ۱) رب ته منسوب، د رب؛ ۲) عارف، عابد.

ربح (rebhá) بنځ.م. ګټه، نفع، مفاد، تکتانه.

ربځ (rabáǰ) ا. وګ. ربېځ.

ربړ (rabáṛ) نر.م ۱) ستونزه، زحمت، کړاو، تکليف؛ ۲) رابړ، ربړ د ځينو خاصو ونو او بوټو شيره ده چې لاتکس يې بولي.

ربړا (rabṛā́) بنځ.م. ۱) ربړ، زيار؛ ۲) رياضت، په عبادت کې زيار او زحمت کښل.

ربړاو (rabṛáw) نر.م. ربړه، تکليف، ستونزه.

ربړن (rabṛán) ص. ستونزمن، ربړي، ارتجاعي.

ربړوکی (rabṛū́kay) ص. ترېدلی، ډار شوی.

ربړول (rabṛawə́l) مص. مت. کړول، په عذابول، په تکليفول، په کړاو اخته کول.

ربړه (rábṛa) بنځ.م (ج. ربړې) ۱) ربړ، کړاو، ستونزه ۲) مناقشه، مجادله، جګړه، جنجال.

ربړي (rabṛí) ص.نب. ربړيز، رابړي، د ربړ.

ربړيالی (rabaṛyā́lay) ص.نر.م. زيار ګالونکی، زيارکښ، زيار ايستونکی، خواريکښ.

ربړيجن (rabṛiján) ص. ربړوونکی، ځوروونکی، مزاحم.

ربړېدل (rabṛedə́l) مص.ل. کړېدل، په کړاو اخته کېدل، په زحمت کېدل، ځورېدل.

ربړيز (rabṛíz) ص. نسر.م. ج. ۱) وګ. ربړي؛ ۲) جنجالي، جګړه يي، جګړه ييز.

ربزکی (rabzákay) نسر.م. (ج. ربزکي) يو ډول مرغه دی.

ربزوکی (rəbazū́kay) ص. نر.م. خوار، خوارکی، بې وسه ناتوانه، بې توانه.

ربط (rabt) نر.م. ۱) اړيکې، اړه، ارتباط، رابطه؛ ۲) ګ. عطف، هغې کليمې چې په يوه جمله کې دوه اسمه يا يو دوې جملې سره يو ځای کوي

ربع (rúbʿ) ص. نب. څلورمه، يو پر څلور ۱/٤ .

ربغړ (rabağáṛ) نر.ج. کوچنيان، ماشومان، زيات اولادونه.

ربغړی (rabğáṛay) ص.نسر.م. ۱) برېنډ، لغړ؛ ۲) خوار، بېوزلی، غريب.

ربل (rabə́l) مص. مت. ۱) وګ. رېبل؛ ۲) ص. نر. م. ج. منلی، قبول. ۳) خوښ، زړه ته نېږدې؛ ٤) نر.م. ۱) پېرزوينه؛ ۲) ښه سلوک.

ربلاند (rablā́nd) نر.م. مهربان، لورانډ، لورين.

ربلول (rabalawə́l) مص.مت. ۱) منل، قبلول؛ ۲) زړه ته نيژدې کول؛ ۳) پېرزوينه کول، لورينه کول؛ ۲) ښه سلوک کول، ښه ګوزاره کول.

ربلونی (rablū́nay) نر.م. بې موره ګډوری.

ربلېدل (rabledə́l) مص.ل. ۱) خوښېدل، قبلېدل؛ ۲) لورېدل، پېرزوکېدل.

ربنېدل (rabnedə́l) مص.ل. رېنېدل، ترېدل، ترهېدل، ډارېدل، بېرېدل، وېرېدل.

ربنوکی (rabṇū́kay) ص. نسر.م. ۱) هوښيار او غښتلی ماشوم؛ ۲) ترهېدلی او ډار شوی.

ربڼه (rabaṇá) بنځ.م. ربڼې، تته رڼا، د لمر کمزورې او لږه روښنايي.

ربوبيت (rubūbiyát) نر.م. خدايي، الوهيت.

ربيټ (rıbít) نر.م. يو ډول مېخ دی چې سر يې د مېخ په څېر او پای يې پرې شوی دی.

ربيع (rabíʿ) بنځ.م. سپرلی؛ ۲) سمسورتيا.

ربينه (rabiná) بنځ.م. د غوږ پرده، پرده.

رپ (rap) نر.م. ۱) رپېدنه، لړزېدنه، رپا، اهتزاز؛ ۲) خوځېده، حرکت؛ ق. شېبه، لحظه، لږ وخت ۳) نر.م. رپکی، موړه، رپک، توک بندي.

رپا (rapā́) بنځ.م. (ج. رپاوې) رپېدنه، بنورېدنه.

رپاړه (rapā́ra) بنځ.م. د کميس ترخځ، هغه ټوټه چې کميس ته يې د ارتولو لپاره وراچوي.

**رپاند** (rapánd) ص. رپېدونکی، رپند، رپېږدونکی.

**رپک** (rapák) نـر.م. (ج. رپکونه) رپ، رپکی، نوک بندي، په دېوال کې موږه.

**رپل** (rapál) نر.م. د يو ډول رخې لـرونکي پخواني ټوپک نوم دی.

**رپند** (rapánd) ص. نـر.م.ج. رپېدونکی، رپاند، رپندی.

**رپندبېواک** (rapándbewā́k) گر. هغه بېواک (کانسونينټ) چې له وينگ (تلفظ) سره يې د ژبې څوکه رپي.

**رپنی** (rapaṇáy) ص. نر.م ۱) موخه، ډک، ترخولې ترغنډو ډک، مالامال؛ ۲) موړ، ډک.

**رپو** (rapū́) ص. نر.م. رفو، پنځرک، پيوند.

**رپوټ** (rapóṭ) نر.م. و.گ. راپور.

**رپوټچي** (rapoṭčí) ص.نب. مخبر، جاسوس.

**رپول** (rapawə́l) مص.مت څوځول، ښورول، زمبول، ځمبول، اهتزازورکول.

**رپهار** (rapahā́r) نر.م. رپا، خوځېدا، ښورېده.

**رپی** (rapáy) نـر.م. ۱) رپهار، رپېدنه، اهتـزاز؛ ۲) بيرغ، توغ، جنډه.

**رپېدل** (rapedə́l) مص.ل. ښورېدل، خوځيدل.

**رپيده** (rapidá) ښځ.م. يوه گـردي يا بيضوي ډوله آله ده چې د ډوډۍ پخوونکی پېږه پرې اواروي او بيا په تناره ټپي.

**رت** (rat) مغ. تک. د صفتونو څخه د مخه د مختارې په ډول راځي او زياتـره پر خالصو رنگـو باندې تاکيد کوي، لکه: رت تور.

**رتبوي** (rutbawí) ص.نب. ۱) د درجې، دمنزلت؛ ۲) د مقام، د رتبې، د څوکۍ.

**رتبه** (rutbá) ښځ.م. (ج. رتبې) ۱) درجه، منزلت؛ ۲) مقام، څوکۍ.

**رټی** (raṭáy) ښځ.م. ۱) د يوې ونې د تخم نوم دی؛ ۲) لږ شی، ډېر کم شی، کم مقدار، نوکی.

**رټي** (raṭí) نر.م.ج. مو. د ۱۱ ماترو يو تال دی.

**رټيب** (raṭíb) نر.م. رديف، کتار، تيپ، چېل.

**رټې پټې** (raṭepáṭe) ص.نب. ۱) چېږې وېږې، ريټې پيټې؛ ۲) ذرې ذرې، دانې دانې.

**رټ** (raṭ) ص.نـر.م.ج. ۱) جوت، ښکاره، واضح؛ ۲) سخت، کلک؛ ۳) نـر.م. رډ، د اوښکو بهېده؛ ٤) ص.نر.م. شرير، فاسد؛ ٥) ص.نر.م. رډ، راوتلی؛ ٦) د نفي، د ترديد؛ ۷) تکره؛ ۸) نر.م. د شري يا کوي د ناروغيو هغه حالت چې دانې راښکاره نه شي.

**رټ رټ** (ráṭraṭ) ق. ۱) زياتې اوښکې تويونه او ژړېدنه؛ ۲) په غټو غټو سترگو، رډ رډ.

**رټل** (raṭə́l) مص.مت. ۱) ترټل، غندل، په خبرو سره تهديدول؛ ۲) شړل، خپه کول، رټل

**رټ مټ** (ráṭmáṭ) ق. په څرگنده، رډېدا، په سپينه، صريحاً، صراحتاً، په ښکاره، په زغرده.

**رټن** (raṭán) ص.نر.م. ټکي ټکي، خال خال، خاپ خاپ.

**رټنه** (raṭə́na) ښځ.م. ۱) ترټنه، غندنه، تهديدونه؛ ۲) شړنه.

**رټوالی** (raṭwā́lay) نـر.م. رټتيا، رډبـډوالی، صراحت، څرگندوالی.

**رټول** (raṭawə́l) مص.مت. رډول، سترگې کلکول، سپين سترگي کول، په سترگو ننوتل.

**رټونکی** (raṭū́nkay) فا.نـر.م. ۱) ترټونکی، غندونکی، تهديدونکی؛ ۲) شړونکی.

**رټه** (ráṭa) ښځ.م. ۱) داغ، خاپ، لکه، ټکی، ټکی؛ ۲) ص.نب. نبغه، سپينه، ښکاره، جوته.

**رټی** (raṭə́y) ښځ.م. يو ډول گياه ده.

**رټېدل** ( raṭedə́l ) مص.ل. رډېدل، سترګې کلکول، سترګې سپینول، کلکېدل، خرې کېدل.

**رجاء** ( rijā́ ) ښځ.م. اسره، طمعه، تمه، امید.

**رجحان** ( rujhā́n ) نر.م. باندې والی، بروالی، لوړوالی، غوره والی، ترجیح، برتري.

**رجزمه** ( rajzúma ) ښځ.م. رنجونی، د رنجو کڅوړه.

**رجز** ( rájaz ) نر.م. ویاړنه، حماسي او رزمیه شعر.

**رجعت** ( rajʻát ) نر.م. راګرځېدنه، راستنېدنه، د طلاق ورکوونکي خپلې ښځې ته راستنېدنه.

**رجم** ( rájam ) نر.م. ۱) سنګسارونه، په تیږو وهنه؛ ۲) کنځل کونګ، نفرینونه، ترټنه.

**رجوع** ( rujū́ʻ ) ښځ.م ۱) مخ راګرځونه، بېرته راتلنه؛ ۲) علاقه؛ ۳) فق. دفسخ مرادف؛ ۳) د رجعي طلاق فسخه کونګ.

**رجه** ( rajá ) ښځ.م. هغه تار چې ختېګر یا ترکاڼ پرې نښې او خطونه اچوي.

**رچ** ( rač ) نر.م ۱) د کور اسباب؛ ۲) د جولاګانو د کړې ړمنځ؛ ۳) عیب؛ ٤) د خرادۍ آله؛ ٥) د کبانو د نیولو جال؛ ٦) رچه، خوښه، رضا؛ ۷) حرص، تلوسه؛ ۳) آرزو؛ ٤) سوده شوې غوېې.

**رچکاڼی** ( račkā́ṇay ) نر.م. دخرادۍ د آلې تیره.

**رچکی** ( račkáy ) نر.م. ځرخی، ځرخنی، سمندخ شوې وړی یا تار.

**رچڼی** ( račaṇáy ) نر.م. خراد، هغه آله یا سړی چې خرادي کوي.

**رځه** ( rə́za ) ښځ.م. لاره، جاده، سړک، لار، واټ.

**رڅ** ( rac ) ص.نر.م. کجی، هغه څوک چې پښه پسې راښکېږي.

**رڅکښل** ( racksə́l ) مص.مت. رڅی کښل، څکول، په څسکه راښکل او کښول.

**رڅیکښل** ( racıksə́l ) مص.مت. رڅکښل، څکول، کښول، په راښکلو سره د یوه شي وړل.

**رحل** ( rahl ) نر.م. و ګ. رحل.

**رحلت** ( rihlát ) نر.م. ۱) تلنه، تګ، لېږدېدنه؛ ۲) مرګ، وفات، له دې دنیا نه تلنه.

**رحم**(۱) ( ráham ) نر.م. زړه سوی، زړه خوږېدنه، لور، زړه خوږونه، مهرباني.

**رحم**(۲) ( rahím ) نر.م. زیلانځ، توملنه، د ښځې په نس کې هغه ځای چې اولاد په کې وي.

**رحمت** ( rahmát ) نر.م. ۱) بخښنه؛ ۲) لورینه؛ ۳) مهرباني، فضل، رحم.

**رحمېدل** ( rahmedə́l ) مص.ل. مهربانېدل.

**رحیل** ( rahíl ) نر.م. کوچ، لېږد، یون.

**رخ** ( rax ) نر.م. د سد مقابل، جېرۍ، د توپک د شپېلۍ په دننني برخه تاو ژاتاو کرښه.

**رخ** ( rux ) نر.م. ۱) مخ، څېره، شکل؛ ۲) واګې، د آس جلو؛ ۳) پلو، لوری، خوا.

**رخام** ( roxā́m ) نر.م. ج. الباتر، په لغت کې د سپینې او نرمې ډبرې په مانا دی.

**رخپټه** ( raxpáṭa ) ښځ.م. ۱) یو غړنی بوټی دی؛ ۲) خرپتې، یو ډول سارانې سابه دي.

**رخپین** ( raxpín ) نر.م. تروکی، رخپین، کوړتوبه.

**رخت** ( raxt ) نر.م. (ج. رختونه) ۱) پال، سپاره؛ ۲) توکر، ټوټه؛ ۳) کالي، جامې.

**رخچینه** ( raxčína ) ښځ.م. عرقچینه؛ ۱) یو ډول خولۍ چې پخوا به ښځو پر سر وله؛ ۲) هغه توکر چې پراس باندې د خولو د جذبولو لپاره تړل کېږي.

**رخړل** ( raxṛə́l ) مص.ل. ریخل، ریخ وهل، بیېدل، بهېدل.

**رخس** ( raxs ) نر.م. هن. رقص، نڅا، ګډا.

**رخسار** (ruxsā́r) نر.م. غومبوري، [illegible]، بارخو، بارخو، نغور، سره وروتي.

**رخسول** (raxsawə́l) مص. مت. رقصول، گډول.

**رخښت** (raxə́ṣt) ص. نر.م. چېرېدلی، رخېدلی، ریخېدلی، هغه څاروي چې وریخېږي.

**رخصت** (ruxsát) نر.م. ۱) تعطیل، اجازه؛ ۲) دستور.

**رخصتول** (ruxsatawə́l) مص. مت. ۱) اجازه ورکول؛ ۲) شړل، له کاره ایستل.

**رخصتي** (ruxsatí) ښځ.م. د تعطیل ورځ.

**رخصتېدل** (ruxsatedə́l) مص.ل. ۱) رخصت کېدل، تعطیل کېدل؛ ۲) شړل کېدل.

**رخن** (raxán) ص. نر.م. ۱) رخه ناک. کینه ناک، حسود؛ ۲) نر.م. ابره، حاصل.

**رخور** (raxawár) ص. کینه کښ؛ وګ.: رخن.

**رخه** (raxá) ښځ.م. (ج. رخې) ۱) کینه، حسد؛ ۲) وګ. رخ؛ ۲) رجه، نقشه، خط اچونه.

**رخه اوسخه** (raxáawsaxá) ما. کرج او کینه، حسد.

**رخی** (raxáy) ص.نر.م ۱) رخه ناک، حسود، رخن؛ ۲) نر.م. د څلېره سوروی، د تلېره سوری، د ډنډموری، د حوض موری.

**رخیل** (rxayə́l) مص. مت. سرخرول، خرېیل.

**رد** (rad) نر.م ۱) لوری، خوا، پلو؛ ۲) تلنه، تېرېدنه؛ ۳) مخې ورګرځونه، ردونه، مستردونه.

**ردخ** (radc) ص. نر.م. رخ، ګڅی، چپی، چپ لاسي.

**رد وبد** (rádūbád) نر.م. ګډې وډې، سپکې سپورې

**رد و بدل** (radūbadál) ق. ۱) نه مخامخ کېدل؛ ۲) عوض و معاوضه، بدلونه، تبادله.

**ردول** (radawə́l) مص. مت. ۱) رد کول، تمبول، مستردول، تردیدول؛ ۲) نفي کول.

**رده** (radá) ښځ.م. (ج. ردې) ۱) پخڅه، مسوره؛ ۲) لاره، لاړ، کتار، قطار، رسته.

**ردي** (radí) ص. نب. باطل، منسوخ، له کاره وتلی.

**ردېدل** (radedə́l) مص. ل ۱) ځوابېدل، مستردېدل؛ ۲) مرتد کېدل؛ ۳) نفي کېدل، باطلېدل.

**ردیف** (radíf) نر.م. ۱) کېږ، څیره، کتار، چیل؛ ۲) پسې شا، ترشېځ؛ ۳) غبرګ سواره.

**رډ** (raḍ) ص. نر.م. ۱) وچ سترګی، سپین سترګی؛ ۲) رټ، بټ سترګی؛ ۳) ښکاره؛ ٤) سرتمبه.

**رډبډ** (ráḍbáḍ) ص.نر.م. ج. ښکاره، جوت.

**رډ په رډه** (ráḍparáḍa) ق. مخامخ، نېغ، ښکاره.

**رډسترګی** (raḍstə́rgay) ص. نر.م. تاغ سترګی، بټ سترګی، بوک سترګی.

**رډول** (raḍawə́l) مص. مت ۱) ښکاره کول، جوتول؛ ۲) نېغول، شخول، سترګې سپینول.

**رډی** (raḍáy) ص. نر. م. ۱) بټ سترګی، بوک سترګی؛ ۲) نر.م. ګېګړ، رېدی، د ریدي ګل.

**رډۍ** (raḍə́y) ښځ.م. پېښی، مرری، د توپک لته کش.

**رډېدل** (raḍedə́l) مص. مت. رنډېدل، خرې کېدل، پېښې کلکول، پېښې خرېیل.

**رذالت** (rezālát) نر.م. رذالته، پستي، سپیتانه، کچوتي، کچګي، ناکسي.

**رذیل** (razíl) ص. نر.م. پست، کچه، فاسد.

**رذیلانه** (razilāná) ق. د رذالت، درذیلتوب، د رذالت په ډول.

**رزم** (rázam) نر.م. (ج. رزمونه) جګړه، شخړه.

**رزمته** (razmatá) ښځ.م ۱) شومه، ورځني خواړه، ارګانه، ورځنی جیره؛ ۲) بسنه، بسیا.

**رزمنوال** (razmanwā́l) ا. رزمنه وال، نفقه رساند، نفقه رسوونکی، تنخواخور، متکفل.

رزمنه (razmána) ا. نفقه، تنخوا، روزي.
رزمي (razmí) ص. نب. د رزم، دحماسې، د جګړې.
رږ (riž) نر. م. (طب.) ریږ، د لېوني سپي ناروغي.
رږند (ražánd) ص. نر. م ۱) رږېدونکی، توېېدونکی؛ ۲) کولېدونکی.
رږول (ražawə́l) مص. مت. ۱) رېږول، رجول؛ ۲) کولول، دوړول، میده میده کول.
رږېدل (ražedə́l) مص. ل. ۱) توېېدل، رېږېدل، رالوېدل، تلېدل؛ ۲) میده کېدل، دوړېدل.
رژیسور (ražisór) نر. م. (هن). رېژیسر، ستېج مېنیجر، مدیر، عامل؛ په تیاتر کې د لوبغاړو مدیر یا سرپرست.
رژیم (ražím) نر. م. ۱) (حکومتي) لاره، قاعده، دول، روش، شکل، سبک، شېوه؛ حکومتي سیستم، د حکومت طرز، د حکومت نوع.
رس (ras) نر. م. ۱) روزي، خواړه، آذوقه؛ ۲) مرسته، ۳) د یوه اغزن بوټي د کوتلي تخم او پاڼو وچه کړې ترخه عصاره ده؛ ٤) جوهر، څوز، عرق؛ ۵) ص. نر. م. ګېډو، خېټور؛ ٦) ښځ. م. ج. یو ډول خاوره ده.
رسا (rasā́) ص. نب. ۱) بالغ، رسېدلی؛ ۲) لوړ؛ ۳) لایق، څیرک؛ ٤) سم، سیخ، نېغ.
رسالت (risālát) نر. م. خبر رسول، پیغام رسونه، پیغمبري، استاځی توب.
رسالدار (rasāladā́r) نر. م. رساله دار؛ ۱) پخوا به یې په عسکري کې د یوې وړې سپرې تولګۍ مشر ته ویل کېده.
رساله (rasālá) ښځ. م. ۱) وړوکي مجموعه، کوچنی کتاب؛ ۲) د سپرو یوه قطعه.
رسالیندی (rasālindáy) نر. م. ټیندی ویشتونکی، ښه غشی ویشتونکی.
رسام (rasā́m) ص. نر. م. (ج. رسامان) انځورګر، څېره کښونکی، څېره کښ، رسم کښونکی.
رسامي (rasāmí) ښځ. م. انځور ویستنه، انځور کښنه، رسم ایستنه، څېره رسمونه.
رستوران (rastūrā́n) نر. م. (ج. رستورانونه) رستورانت، د خوراکي موادو د رانیولو او خوړلو ځای.
رسته (rastá) (ج. رستې) رده، کتار، قطار، صف.
رسد (rasád) نر. م. ۱) برخه، حصه، ونډه، قسمت؛ ۲) د خوراکي شیانو مغازه؛ ۳) د لو وخت.
رسلیک (raslík) نر. م. (ج. رسلیکونه) رسید، پاروخطی، سند، تمسک.
رسم (rásam) نر. م. (ج. رسمونه) ۱) دود، رواج، دستور؛ ۲) انځور، تصویر، د یو شي صورت؛ ۳) د بوسونه پاکه شوې رشه.
رسم الخط (rasmulxát) نر. م. لیک دود، معیاري لیک، آرتوګرافي.
رسموني (rasmaū́nay) نر. م. ګونډې مال، پایمال، د غنمو هغه ګونډي چې د رشې د پاکېدو په وخت کې لواړ پاتې شي.
رسمي (rasmí) ص. نب. ۱) د قاعدې، د عرف، د عنعنې؛ ۲) حکومتي، دولتي، سرکاري.
رسمیت (rasmiyát) نر. م. رسمي جنبه لرنه.
رسمېدل (rasmedə́l) مص. ل. انځورېدل.
رسند (rasánd) نر. م. ۱) د ناوې د آس مخصوص جلو؛ ۲) هغه رنګه دسمال چې خسرګنۍ یې د زوم د آس د غاړې لپاره ورکوي.
رسنۍ (rasanáy) ښځ. م. ذرایع.
رسوا (raswā́) ص. نب. ۱) پکړي، بې آبرو، لوڅ؛ ۲) معلوم، څرګند، ښکاره، جوت.
رسوب (rusūb) نر. م. خړه، خړوبی، کونوبی، ختېبل.

**رسوخ** (rusū́x) نر.م. ۱) مخ روني، اعتبار، عزت، منلتیا؛ ۲) ثابت، ټینګ، محکم، استوار.

**رسول**[1] (rasū́l) نر.م. ۱) پیغمبر، دخدای استازی؛ ۲) استازی، قاصد.

**رسول**[2] (rasawə́l) مص.مت. ۱) ورل، سپارل؛ ۲) ترسره کول؛ ۳) لوړول، جګول.

**رسولی** (rasūláy) ښځ.م. هغه زخه یا مېخک چې د لاسو یا پښو په ګوتو کې راخېژي.

**رسونه** (rasawə́na) ښځ.م. ۱) ورنه؛ ۲) ترسره کونک، بشپړونه؛ ۳) پخونه؛ ٤) د کمال په لور خوځونه.

**رسوم** (rusū́m) نر.ج. د رسم جمع، وګ. رسم.

**رسی** (rasáy) ښځ.م. بیاسته، رسه، پړی، بدریشه، لوی او غټ پړی، لوی بدریژه.

**رسید** (rasíd) نر.م. سند، رسلیک، چیټی.

**رسېدل** (rasedə́l) مص.ل ۱) رسېده، ترسره کېدل، بشپړېدل؛ ۲) مج. پخېدل (د غلې، مېوې...)؛ ۳) ځوانېدل؛ ٤) ورسپارل کېدل.

**رسی والا** (rasəywālā́) ص. نر.م.ج. رسی خرڅوونکی، د رسی څښتن یا خاوند.

**رش** (raš) نر.م. ۱) پېروی، د شیدو سر، قیماق؛ ۲) د اړې بوره؛ ۳) میده ګي، پوډر؛ ۳) وړې وړې داني، نینکی، زخې، ګرمکې؛ ٤) خیری؛ ۵) ګاټه شربت؛ ٦) څګ، کپ، قف.

**رشاد** (rašā́d) ص. نر.م. ۱) ځوان، رشد موندلی؛ ۲) پرلاري سم؛ ۳) مقاومت؛ ٤) بریالی، کامیاب، بریالیتوب.

**رشادت** (rašādát) نر.م. زړورتیا، ځوانمردي، راستي.

**رشتلی** (raštálay) نر.م. تلی، پاتې شوني، د درمنده پاتې.

**رشته** (rəštá) ښځ.م. (ج. رشتې) ۱) تار، مزی؛ ۲) څانګه، مسلک، تخصص؛ ۳) اړیکی.

**رش چای** (raščā́y) ا. پېروي چای، تورچای.

**رشد** (rušd) نر.م. ۱) نمو، وده، جسمي او ذهني انکشاف؛ ۲) غوړېدنه، رسېدنه، غټېدنه.

**رشقه** (rišqá) ښځ.م. رشکه، ربشکه، شپېشتی، شفتلو غوندې یو ډول واښه دي.

**رشک** (rašk) نر.م. ۱) پم، پونی، د پوست یو ډول ناروغي ده؛ ۲) ککړ، غش، ګډ، لړلی.

**رشکی** (rašakáy) ښځ.م. وړه رشه، کوچنی رشه، ورکوټی درمند.

**رشکین** (raškín) ص. نر.م ۱) مشوش، مغشوش؛ ۲) ګډ، ککړ، لړلی.

**رش لری** (rašláray) ص. نر.م. کیسه مال، خیری پاک.

**رشوت** (rišwát) نر.م. بډې، رشوه.

**رشه** (rašá) ښځ.م. (ج. رشې) ربشه، راشه، پاک شوی درمند.

**رشید** (rašíd) ص. نر.م. ۱) وده موندلی، د ودې خاوند؛ ۲) پر لارې سم، رښتینی؛ ۳) زړور.

**رښ** (ras) نر.م. شیره، عصاره، ځوښه، ځوښاب.

**رښتنګلوي** (rəstangalwí) ښځ.م. ۱) سپینولي، صداقت؛ ۲) دوستي.

**رښتمني** (rəstmaní) ښځ.م. ثبوت، تحقیق.

**رښتنی**[1] (ristánay) ص. نر.م. صادق، سپین.

**رښتنی**[2] (rəstaní) ښځ.م. رښتینولي، صداقت.

**رښتونی** (ristū́nay) ص. نر.م. رښتنی، صادق، سپین، رښتینی.

**رښتیا** (restyá) ښځ.م. رشتیا، صداقت.

**رښتیا پال** (restyāpā́l) ص. حقیقپال، رښتیا پالونکی.

**زبښاک** (zabesak) ا. ښکښاک، استثمار.

**زبښاککر** (zabesakgar) ص. ښکښاککر، استثمارگر.

**زبښل** (zbesal) مص. مت. ۱) چوپل، ښکښل؛ ۲) جذبول، راښکل؛ ۳) نچوړول، نښتېځل، اوبه ترې راښکل؛ ٤) خوړل، ښل.

**زبښند** (zbesand) ص. نر. م. ج. ۱) چوپونکی؛ ۲) جذبوونکی، جاذب.

**زبښنه** (zbesana) ښځ. م. ۱) ښکښنه، چوپنه؛ ۲) جذبونه؛ ۳) نښتېځنه؛ ٤) خوړنه.

**زبلل** (zbelal) مص. مت. وگ. زبښل.

**زبنگی** (zbengay) نر. م. کوربونی، خښتگ، ژبونکی.

**زپ** (zap) ص. نر. م. ضعیف، کمزوری، زوړ.

**زجاجیه** (zujajiya) ښځ. م. شفافه جلاتیني ماده ده چې د سترگو په دننه کې وجود لري.

**زجر** (zajar) نر. م. (ج. زجرونه) ۱) کړاو، څور، تکلیف؛ ۲) زورونه، فشار، شکنجه.

**زحف** (zahf) نر. م. (عس.) په لنډو فاصلو کې د منفرد نفر د تقرب یوشکل دی.

**زحمت** (zahmat) نر. م. کړاو، رېړ، تکلیف.

**زحمت کښ** (zahmatkas) ص. نر. م. زیارکښ، زیارایستونکی، خواري کښ.

**زحمتي** (zahmati) ص. نب. ۱) وگ. زیارکښ؛ ۲) مشکل، هغه څه چې زیاته انرژي غواړي.

**زخته** (zaxta) ښځ. م. کنډوله، ښبته، یو نبات دی چې په غرونو کې پیدا کېږي.

**زخم** (zaxam) نر. م. (ج. زخمونه) ۱) ټپ، پرهار؛ ۲) خارخوړی، گرزنی، څرخاو، بغری، گرداو.

**زخمي** (zaxmi) ص. نر. ښځ. م. ټپي، پرهاري، پراري، پرهارځن.

**زخمه** (zaxma) ښځ. م. شهباز، شاباز، ورکوټې لرگی دی چې د رباب د وهلو په وخت کې یې په گوتو کې نیسي او هغه په ترنگوي.

**زخن** (zaxan) ص. نر. م. ج. خنډلرونکی، زخداره.

**زخن شعر** (zaxanssr) ا. زخه وال شعر، غوټن شعر، سکته لرونکی شعر، مات شعر.

**زخه** (zaxa) ښځ. م ۱) غوټه، خنډ، گنډه؛ ۲) وړوکی شنه یا توره دانه چې بدن باندې راخېژي؛ ۳) د ټوپک جوک.

**زخیره** (zaxira) ښځ. م. وگ. ځېرمه.

**زد** (zad) نر. م ۱) د سیند لاره یامسیر؛ ۲) اثر، اغېز.

**زدایت** (zadayat) نر. م. ختېه، اصل، کورنۍ، ټبر.

**زدلاندی** (zadlanday) نر. م. تر نښې لاندې.

**زدوول** (zadawual) مص. مت. زدېیل، مېړل، سولول، منښل، رسېیل.

**زدویل** (zdoyal) مص. مت. وگ. زدوول.

**زده**[1] (zda) ص. نب. په یاد، په حافظه کې، ضبط، حفظ، زده شوي.

**زده**[2] (zada) ص. نب. ۱) تکېدلی، وهل شوی، ځپلی؛ ۲) غمجن؛ ۳) لگېدلی، داغي شوی؛ ٤) معلوم؛ ٥) ور. زخمی، د وروستاړي په ډول د نوم په پای کې راځي، لکه: غمزده.

**زده کړوځی** (zdakrozay) ا. د زده کړې کورس.

**زده کړه** (zdakra) ښځ. م. زده کول، پوهېدنه، آموزش، د پوهنې یا مهارت حاصلول.

**زده کړه وال** (zdakrawal) ا. د زده کړې خاوند، تعلیمیافته.

**زده کړیال** (zdakryal) ا. زده کوونکی، شاگرد، پوهنیال.

**زده کول** (zdakawal) مص. مت. ۱) یادول، ضبطول؛ ۲) تعلیم کول، پوهه حاصلول.

زده کوونکی (zdakawunkay) نر.م. شاګرد، متعلم، طالب، محصل.

زده کېدل (zdakedal) مص.ل. ضبطېدل، یادېدل، د پوهنې یا مهارت حاصلېدل.

زر (zar) نر.م.ج. ۱) وګ. سره زر؛ ۲) وګ. سپین زر؛ ۳) روپۍ، سکه؛ ۴) ق. ژر، تند، په بیړه.

زراعت (zarasat) نر.م. کرنه، کرهنه، کر، کښت، کرونده (وګ. کرهنه).

زراعتي (zarasati) ص.نب. د زراعت، د کرنې د کرهنې، د کښت، په زراعت پورې اړوند.

زرافه (zarafa) ښځ.م. اوږد پرانګ، یو تی لرونکی او شخوند وهونکی څناور دی.

زرامی (zramay) نر.م. څاڅکی، قطره.

زرب (zrab) نر.م. ۱) شدت؛ ۲) غلبه، بری؛ ۳) پرتم.

زربرخ (zarbarax) نر.م. ۱) د زرو پاڼه، زرورق؛ ۲) سپلګه، ابرک، شګوګل.

زربوزی (zarbozay) نر.م. یو ډول ګنډون دی چې ښځې یې د ګلابتونو څخه جوړوي.

زربی (zarbay) ښځ.م. په ګومبزه کې د خښتو په تغیر سره بله رده.

زربی (zarbay) نر.م. یوه آله ده چې د بوټ یا څپلۍ د ونډنې پرې سورې کوي.

زربیانګ (zarbiyang) نر.م. یوه آله ده چې موچي پرې څرمن نرۍ کوي او یا یې پرې پستوي.

زربېره (zarbera) ښځ.م. یو ډول ګیاه ده چې وچ شوی یې د پوزې د نسوار په ډول استعمالوي.

زرپاڼه (zarpana) ا. زرینه پاڼه، زرورق.

زرپښ (zarpas) ص.نر.م. زرګر، جوهري.

زرپېرلی (zarperlay) نر.م. زرخرید، په بیه اخیستی شوی (مریی).

زرترزره (zartarzara) ق. ژر تر ژره، فوراً، ډېر ژر.

زرتشت (zartast) نر.م. وګ. زردښت.

زرتله (zartala) ا. کنډ، د زرو تللو تله.

زرتوکی (zartukay) ا. زربفت، زربافت.

زرڅاڼ (zarcan) ص. زرولون، زرشوبي.

زرڅوبه (zarcoba) ښځ.م. وګ. کورکمن.

زرځ (zarj) ص.نر.م. زرز، شین وشمه سور.

زرځې سترګې (zarjestarge) ښځ.م.ج. سرې شنا ورګې سترګې (مېشي).

زرځی (zarjay) ښځ.م. ۱) لوشه، زرنې، بدبویه خټه یا چیکړ؛ ۲) نر.م. هغه پسه چې د غوږونو او سترګو د خوا و شا وېښتان یې ژېړ وي.

زرڅانګه (zarcanga) ا. زرینه څانګه.

زرڅاني (zarcanay) ص. زرڅاندی، زرولوني، زرشو.

زرخېز (zarxez) نر.م.ج. وګ. حاصلخېز.

زردار (zardar) ص.نر.م. شتمن، بډای، دولتمن.

زردالو (zardalu) نر.م.ج. (ج. زردالان) مندته، خوباني، زېړ غنجي، یو ډول خوږه مېوه ده.

زردکه (zardaka) ښځ.م. ۱) زېړانکه، ژړانکه، یوه مرغۍ ده؛ ۲) ګازره، ګاجره.

زردوم (zardum) ص.نر.م. زهر قاتل.

زرډانګی (zardangay) نر.م. کروه، د فاصلې یو واحد دی چې دوه کیلومتره کېږي.

زرزپو (zarzapo) ښځ.م. ناڅاپه وهنه، ناڅاپه ګوزار.

زرزري (zarzari) ص.نسب. ۱) زرباف، زرین؛ ۲) تلولی، وارختا؛ ۲) متردد، زړه نازړه.

زرزی (zarzay) نر.م. ځرځی، زرځی، هغه پسه چې غوږونه او دسترګو خوا یې ژېړ وېښتان لري.

زرغا (zarga) ص.نب. ښالېز، شین، تازه، زرغون.

زرغاله (zargala) ښځ.م. ښځه په نفاس کې.

**زرغون** (zargun) ص. نـر.م. ج. ۱) یو رنگ دی چې د طیف له اړخه د اسماني اوژېړ تمنځ واقع دی، شین؛ ۲) لکه د نوو راټوکېدلو رشقه او شوتلو رنګ؛ ۳) ټوکېدلی، شین شوی.

**زرغونتوب** (zarguntob) نر.م. ۱) زرغـونتیا، شینوالی؛ ۲) شنه کېدنه، زرغونېدنه، راټوکېدنه زرغونتیا، زرغون والی.

**زرغونکی** (zargunkay) نر.م. سابه، سا ګ.

**زرغون ګلی** (zargungalay) نر. م. یو ډول بوټی دی چې په غنمو کې راشین کېږي چې لاجوردي ګل لري.

**زرغون مازو** (zargunmazu) نـر.م. د پېـرګي په څېر د یوې ونې مېوه ده .

**زرغونول** (zargunawal) مص. مت. ۱) سروهل، شنه کـول؛ ۲) زرغـون رنګ ورکـول؛ ۳) مج. نېکمرغه کول؛ ٤) مج. ډېرول، زیاتول.

**زرغونېدل** (zargunedal) مص.ل ۱) شنه کېدل، ټوکېدل؛ ۲) شین رنګ اخیستل؛ ۳) مج. بختور کېدل، نېکمرغه کېدل.

**زرغـونیـز** (zarguniz) ص. زرغـونېـدونکی، ټوکېدونکی، شین کېدونکی.

**زرغه** (zarga) ص. ښځ. م. لټي، تمبلي، ناراستي.

**زرق** (zarq) نـر.م. بدن ته د پېچکاري په وسیله د اوبلنې دوا داخلونه.

**زرک** (zark) نـر.م. خـنـډل، یو ډول ښکلی غـرنی مارغه دی.

**زرکانی** (zarkanay) نر.م. محک، هغه تیږه چې د زرو اصیل والی او کوټه والی څرګندوي.

**زرکوړی** (zarkuray) نـر.م. زرکـوړی، د زرکې بچی، د زرک مصغر.

**زرکلیزه** (zarkkaliza) ا. زرمه کلیزه، زرمه سالګره.

**زرکه** (zarka) ښځ. م. (ج. زرکې) د زرک مؤنث.

**زرکیره** (zarkira) ښځ.م. یو ډول تریخ نبات دی.

**زرګر** (zargar) ج. زرګران، زرپښ، هغه سړی چې د زرو یا کانیو څخه ګاڼې جوړوي.

**زرګرایه** (zargraya) ص. نب. زرچنده، زرکرته، زرواري، زرګونه، زرځلي.

**زرګري** (zargari) ښځ.م. د زرګر کسب یا پېشه.

**زرګردان** (zargardan) نر.م. یو ډول نبات دی چې تخم یې زهرناکه او وژونکی وی . .

**زرګل** (zargwal) نر.م. یو ډول ګل دی.

**زرګنډی** (zarganday) فـا.نـر.م. د زري شـا ګنډونکی.

**زرګوړی** (zarguray) نر.م. و ګ. زرکوړی.

**زرګونه** (zarguna) ص. نب. زرګرایه، زرچنده، په زرهاوو، په زرګونو.

**زرګونی** (zargunay) ص. نر.م. ۱) زریز، د زرو، د زرو په عدد مربوط؛ ۲) د زرو روپو نوټ.

**زرګه** (zarga) ښځ.م. یو ډول اغـزن بوټی دی چې د ګلاب د بوټي ته ورته دی.

**زرګیر** (zargir) نـر.م. ۱) د خـرمنې هغې ګوتمې چې غشی ویشتونکی یا مـوچي یې په ګـوته کوي؛ ۲) ص. نر.م. د زور ګیر لنډ شکل.

**زرل** (zaral) مص. مت. ملمع کول، د زرو آب ورکول.

**زرلښته** (zarlasta) ا. د زرو لښته (ځانګړی نوم).

**زرمشر** (zarmasar) ص. نر.م. د زرو کسانو مشر.

**زرناوی** (zarnaway) ا. زرناو، هزار ناو.

**زرنځه** (zaranja) ښځ.م. لـوشه، بدبویه او خوسا شوې خټه. زرنې، زرنځي، زرنه.

**زرندی** (zranday) ښځ.م. زېږ زمیني، تاکاوي.

**زرنګ** (zarang) ص.نر.م. ځیرک، تېز، چالاک، با استعداده.

**زرنګار** (zarnigar) ص. نر.م. ج. ۱) په زرو سره ښکلل شوی او نقاشي شوی؛ ۲) ښکلی، ډولي.

**زرنګي** (zarangi) ښځ.م. ځیرکي، چالاکي.

**زرنه** (zarna) نر.ج. زرنه، یو ډول تېل دی چې د لمنځې د ونې له ریښو څخه ایستل کېږي.

**زرنی** (zaranay) ص. نر.م. ۱) ځری؛ ۲) مخبر.

**زرني** (zarni) ښځ.م. په نظر کې ساتنه، څارنه.

**زرنی** (zaranay) ص. نر.م. ۱) جُذامي، د جُذام په ناروغۍ اخته (و.ګ. پړنګ[۲])؛ ۲) بې خبره.

**زرنیخ** (zarnix) نر.م. سنکیا، ارتال، یو معدني جسم او یو کیمیاوي عنصر دی.

**زروبول** (zarobawal) مص. مت. ملمع کول، د زرو اوبه ورکول، د زرو مخ ورکول.

**زروبېدل** (zarobedal) مص. ل. ملمع کېدل، د زرو اوبه ورکول کېدل.

**زره[۱]** (zara) ښځ.م. و.ګ. ذره.

**زره[۲]** (zira) ښځ.م. ۱) زغره، بګتری، یو ډول پوښ (جامه) دی چې د جنګیالیو د بدن د پوښلو لپاره د جګړې په وخت اغوستل؛ ۲) د ښېریو، جنګي الوتکو، ټانکونو باندنی کلک فلزي پوښ چې ګولۍ اغېزه نه باندې کوي.

**زرها** (zarha) ص. نب. و.ګ. زرو[۱].

**زره پوښ** (zirapos) ۱) زره پوش، موټر ته ورته یو جنګي نقلیه وسیله ده؛ ۲) زغروال، په هغه څه چې زره اغوستله شوې وي.

**زری** (zaray) نر.م. ۱) و.ګ. ځری؛ ۲) ص. نر.م. هوښیار، ځیرک، پوه، عاقل.

**زری** (zaray) نر.م. ۱) زرګیز، زرګون، د زرو نوټ؛ ۲) زریزه، زرمه، زرکلنی، زرکاله.

**زري** (zari) ص. نب. ۱) د زرو، د طلا؛ ۲) زري توکر؛ ۳) ښځ.م. د ستوني یو راز ناروغي ده.

**زرۍ** (zaray) ښځ.م. د یوه وخت خواړه، د یوه وخت آذوقه، د یوه وخت جیره.

**زریځ** (zarij) ص. نر.م. ج. زري، زرین، د زرو.

**زرۍ ځبله** (zarayjabla) نر.م. ګډه نفقه، د ګډې شومه، د خوراکتوکو شرکت، د ځوکسانو د ګډ کار نفقه.

**زریز** (zariz) نر.م. ۱) خروسک، خراسک، یو راز د ستوني ناروغي ده؛ ۲) د زرو روپو نوټ.

**زري زرکه** (zarizarka) ښځ.م. د زرکانو د کورنۍ یو ډول دی چې کبک زري هم ورته وايي.

**زرین** (zarin) ص. نر.م. ج. د زرو، د طلا، زریځ، د سپینو زرو یا سرو زرو څخه جوړ.

**زریره** (zrera) نر.م. یو ډول غرنی نبات دی، رنګ یې خړ او غونډې غونډې داني کوي.

**زریلګ** (zrilg) نر.م. و.ګ. جرلګ.

**زړامبو** (zrambo) ص. نب. ۱) جړامبو، شلم، شواړ؛ ۲) ځوړند، ځړېدلی؛ زړان.

**زړامبوی** (zrambuy) نر.م. لته بوی، زړمبوی، د توکر د سوځېدو بوی.

**زړبودي** (zarbudi) ا. زړښت، زوړوالی، بوډاتوب.

**زړپ** (zrap) نر.م. نرګس، یو ډول ګل دی.

**زړتوب** (zartob) نر.م. زوړوالی، زړوالی، زړښت، زړتیا، زړوالی، زوړوالی.

**زړخن** (zarxan) ص. نر.ج. زړه یي غوړي، وراسته او بوین غوړي، خراب شوي غوړي.

**زړخن توب** (zarxantob) نر.م. زړه یي توب، زړخنوالی، د غوړیو ستغېدنه او خرابېدنه.

**زړخنول** (zarxanawal) مص. مت. غوړو ته زړه خوند ورکول، غوړي بدبویه او خرابول.

**زړخنېدل** (zarxanedal) مص.ل. غوړي ستغېدل، غوړي بدبویه کېدل، غوړي خرابېدل.

**زړخوږی** (zarxuzay) ص.نر.م. ۱) په‌زړه زخمي، په‌زړه خوږ او غمجن؛ ۲) همدرد، خواخوږ.

**زړه خوږي** (zarxuzi) ښځ.م. ۱) په‌زړه زخمي والی، په‌زړه خوږ توب؛ ۲) همدردي، خواخوږي.

**زړداوه** (zardawa) ښځ.م. د سپېلني په‌څېر یو بوټی دی چې ژېړ ګلان کوي.

**زړښت** (zarast) نر.م. زړېدنه، زوړوالی، کهولت.

**زړغی** (zargay) ښځ.م. تردد، زړه نازړه توب، بې زړه توب.

**زړغی** (zargay) نر.م. ۱) متردد، زړه نا زړه؛ ۲) له ناروغۍ نه وروسته اشتها.

**زړکوټی** (zarkutay) نر.م. زړه توټه، زوړ توکر.

**زړګوټی**[۱] (zargotay) نر.م. د زړه مصغر.

**زړګوټی**[۲] (zargutay) زړوکی، ټیکری، پړونی.

**زړګی** (zargay) نر.م. ۱) زړګوټی، د زړه مصغر؛ ۲) ګران، خوږ، زړه ته نیږدې.

**زړن** (zaran) ص. نر.م.ج. زړور، دلاور، شجاع.

**زړوالی** (zarwalay) نر.م. زوړوالی، زړښت، سپین‌ږیرتوب، سپین‌ږرتیا، بوډاوالی.

**زړور** (zarawar) ص. نر.م.ج. دلاور، شجاع.

**زړورتوب** (zarawartob) نر.م. زړورتیا، زړوروالی.

**زړوکی** (zarukay) نر.م. ټیکری، پړونی، لوپټه.

**زړول** (zarawal) مص. مت ۱) استهلاکول، په کراره کراره له منځه وړل؛ ۲) سن زیاتول، بوډا کول.

**زړومبه** (zrumba) نر.م. زړمبوی، زاړمبوی، لته بوی، زړومبی.

**زړوېز** (zarwez) ا. زوړویی، زوړ لغت، ارکالیزم.

**زړه** (zra) نر.م. (ج. زړونه) قلب.

**زړه‌اوځیګر** (zraawzigar) ام زړه او ینه، ډېر ګران.

**زړه برم** (zrabram) نر.م. د زړه قوت، د زړه زور.

**زړه پوري** (zarapore) ص. نسب. په‌زړه پورې، زړه ته نیږدې، زړه ته تېر.

**زړه پوه** (zrapoh) ص. زړه پوهاند، د زړه د ناروغیو ځانګوال (ماهر)، کارډیالوجیسټ.

**زړه پوهه** (zrapoha) ا. د زړه د ناروغیو پوهنه.

**زړه ترکی** (zratrakay) ص. نر.م.و ګ. زاره ترکی

**زړه ترکي** (zratraki) ښځ.م. غمجنوالی، زړه چاودي.

**زړه تورن** (zratoran) نر.م. خواتوری، زړه توری.

**زړه توری** (zratoray) ص. نر.م. زړه تورن، زړه وهلی.

**زړه ټکی** (zratakay) نر.م. زړه خواله، د زړه راز.

**زړه خوړ** (zraxor) ص. د بل یا خپل زړه خوړونکی، ځان خوری، زړه خوړینی.

**زړه خوري** (zraxori) ا. زړه خوړنه، زړه خوړینی.

**زړه خوړینی** (zraxwrinay) ص. نر.م. غمجن، پریشانه، ډېر په عذاب، زړه وهلی.

**زړه خوږی** (zraxuzay) ص. نر.م. خواخوږی، زړه سواندی، غمشریک.

**زړه خوږي** (zraxuzi) ښځ.م. خواخوږي، زړه سواندي، همدردي، غمشریکي.

**زړه دره** (zaradara) ښځ.م. و ګ. زوړ [illegible]

**زړه ډغی** (zradagay) ص.نر.م. زړه وهلی، [illegible] توری

**زړه ډغي** (radagi) ښځ.م. زړه وهنه

**زړه راکښون** (zraraksun) ا. [illegible]ون، زړه ته نژدېوالی، زړه ته پرېوتل.

**زړه ستری** (zrastaray) ص. سستری ستومان.

**زړه سواند** (zraswand) ص. نر.م. زړه سواندی، د ترحم خاوند، د نرم زړه خاوند.

**زړه سواندي** (zraswandi) ښځ.م. زړه خوږي، دلسوزي، زړه سوځونه.

**زره سول** (zṛaswal) نر. م. زره خوږی کول، زړه سوی لرل.

**زره سوی** (zṛasāway) نر. م ۱) ویرژلی، کړېدلی، غمزده؛ ۲) رحم، شفقت، زړه سواندي.

**زره شین** (zṛašin) نر. م. خلق تنگی، په تنگ راغلی، عقده اخیستی.

**زره شینی** (zṛašinay) ص. نر. م. خلق تنگی، په تنگ راغلی، په عذاب شوی.

**زره غوښتی** (zṛaġuṣtay) نر. م. په زړه، منلی، خوښ شوی، غوره شوی.

**زره کول** (zṛakawal) مص. ل. زړور توب کول، جرأت کول...

**زره کېدل** (zṛakedəl) مص. ل. ۱) زړه غوښتل، د یو شي په ورکولو راضي کېدل؛ ۲) هوا کېدل.

**زره گرگه** (zaṛagarga) ښځ. م. ۱) گرگه، کونده، د ونې زړه کونده؛ ۲) د ماشومانو یوه لوبه ده.

**زره لوغې** (zṛalwağe) ص. ښځ. م. زړې لوغزه، هغه غوا چې د لنگېدو او شیدو ورکولو موده یې ډېره وتلې وي.

**زره ور** (zṛawər) ص. نر. م. ج. و گ. زړور.

**زره وروني** (zṛawrūnay) ص. زره منبتی، دلبر.

**زړی** (zaṛay) نر. م ۱) و گ. ژېړی؛ ۲) و گ. زونی؛ ۲) مندکه، بمبته؛ ٤) مج. نسل، ختم.

**زړېدل** (zaṛedəl) مص. ل. ۱) استهلاک کېدل، مصرفېدل؛ ۲) بوډا کېدل، عمر زیاتېدل.

**زړې لوغزه** (zaṛelawğza) ص. ښځ. م. و گ. زره لوغې.

**زړپه غوړي** (zarpaġwaṛi) جن. و گ. زرخن.

**ززغولی** (zazġolay) نر. م. وازگه چې ویلې او غوړ ترې جلا کړی شي نو پاتې شوي جامد مواد ززغولي بلل کېږي.

**ززگی** (zazgay) نر. م. جیرگی، جیشکی، زیږگی، شیشکی، ژیژگی، جیزگی، جوزگی.

**زږه**⁽¹⁾ (zaẓa) ص. ښځ. م. ترخه خبره، تنده خبره.

**زږه**⁽²⁾ (zẓa) ښځ. م (ج. زږې) شلہ روپۍ، سپینو زرو سکه ده چې اوس رواج نه لري.

**زږه غاره** (zaẓāgara) ا. زیږه غاړه، زیږ کړدود (لهجه)، شدیدلحن، سخته لهجه.

**زشکله** (zāškala) ښځ. م. و گ. ځښکله.

**زښا** (zaṣā) ښځ. م. زښه، کنځله، د کنځلې غوږ.

**زښت** (zaṣt) ص. نر. م. ج. ۱) ډېر، زیات؛ ۲) له نظره بد، له پامه بد، ځښت.

**زښت ډېر** (zaṣtder) ص. نر. ج. بېخي زیات، بالکل زیات، زښت زیات.

**زښت ښه** (zaṣtsa) ص. نر. م. ج. بېخي ښه، بالکل ښه، کاملاً ښه.

**زښتېل** (zaṣteyəl) مص. مت ۱) خورول، کړول، ربړول؛ ۲) خپه کول، خوابدی کول.

**زعامت** (zaʕāmat) نر. م. ۱) مشرتابه، مشرتوب، سترتوب؛ ۲) پېشوایي، رهبري.

**زعفران** (zaʕfrān) نر. ج. زاپران، کنگو، یو ډول نبات دی چې ژېړ خوشبویه گلان لري.

**زعیم** (zaʕim) ص. نر. م. (ج. زعیمان، زعماء) ۱) مشر، د قوم مشر؛ ۲) کفیل؛ ۳) ضامن؛ ٤) رئیس.

**زغ** (zağ) نر. م. ۱) جغ. ژغ، یوه لرگینه آله ده چې د کار په وخت کې ددوو غوایانو پر اوږو ایښودل کېږي؛ ۲) د غوړیو د سره کولو اواز.

**زغاره** (zğāra) ښځ. م. د غوښتو ډوډۍ، د گوښتو ډوډۍ، د ړدنو (ایړدن) ډوډۍ.

**زغاست** (zğāst) نر. م. و گ. ځغاست.

**زغاښت** (zğāṣt) نر. م. و گ. ځغاست.

**زغال** (zugāl) نر.م.ج. وگ. سکاره.
**زغبنډی** (zaǧbanḍay) نر.م. وگ. جغنډی.
**زغر** (zǧar) نر.ج. یو ډول حبوب دی چې غوړ او تېل تري وباسي.
**زغرپوښ** (zǧarpoṣ) ص. زغرګاډی، زغره پوښ.
**زغرتټری** (zǧartaṭaray) ص. زغرواسکټ، زغر سینه، سینه زغری.
**زغرد** (zǧard) ص. نر.م.ج. ۱) زغړد، زړور؛ ۲) تېز، تند؛ ۳) چالاک؛ ٤) بېچ، خوندي.
**زغردتوب** (zǧardtob) نر.م. ۱) زغرتیا، زغړتوب، زغردوالی، زړرتیا؛ ۲) تېزي، تندي؛ ۳) چالاکي؛ ٤) بچونه، ساتنه.
**زغردتیا** (zǧardtyā) ا. وگ.: زغردتوب.
**زغردول** (zǧardawal) مص. مت. ۱) زغړدول، زړورکول؛ ۲) تېزول؛ ۳) چابکول؛ ٤) بچول.
**زغرساز** (zǧarsāz) ص. زغره سازوونکی، زغر جوړوونکی.
**زغرګاډی** (zǧargāḍay) ا. زغرورګاډی، زغرپوښ ګاډی.
**زغرلی** (zǧarəlay) نر.م. اوبچی، زغره اغوستونکی، زغره لرونکی.
**زغرماتی** (zǧarmātay) ص. زغرماتوونکی.
**زغروال ځواکونه** (zǧarawāljwākuuna) ا. زغرور یا زغریال ځواکونه، زرهدار قوا.
**زغروبی** (zǧarobay) ص. نر.م ۱) جابر، روبناک؛ ۲) تعویذ. ړغوربی؛ ۳) خوړونکی سپی.
**زغرووی** (zǧaroway) نر.م. پالېزوان، د پالېز ساتونکی.
**زغره** (zǧara) ښځ.م. زغړد، وگ. زره.
**زغره غوټه** (zǧaraǧuṭa) ښځ.م. کلکه غوټه، سخته ګنډه، ټینګه غوټه.

**زغریالی** (zǧaryālay) نر.م. زغریال، زغروال، زغرور، هغه څه چې زغره لري.
**زغړ** (zǧaṛ) ص. نر.م. ساتلی، محفوظ، خوندي.
**زغړل** (zǧaṛəl) مص. مت. بچول، ساتل، خوندي کول.
**زغړنځه** (zuǧṛənja) ښځ.م. زوغړنځه، پوچه پسته.
**زغستل** (zǧastəl) مص. ل. وگ. ځغستل.
**زغل** (zǧal) نر.م. وگ. ځغل.
**زغم** (zǧam) نر.م. ۱) حوصله، صبر، تحمل؛ ۲) جذبونه، هضمونه؛ ۳) رو. ګالنه، زغما.
**زغمل** (zǧaməl) مص. مت. ۱) ګالل، تحمل کول، برداشت کول؛ ۲) جذبول؛ هضمول.
**زغمناک** (zǧamnāk) ص. نر.م. ۱) صبرناک، حوصله لرونکی؛ ۲) جذبناک.
**زغمونکی** (zǧamunkay) فا. نر.م. ۱) زغمناک، با حوصله، صابر؛ ۲) جذبوونکی.
**زغمېدل** (zǧamedəl) مص. ل. ۱) ګالل کېدل؛ ۲) جذبېدل؛ ۳) ربدل؛ ٤) غمېدل، اوردېدل.
**زغنځی** (zǧanjay) ښځ.م. یو ډول نبات دی.
**زغوپر** (zǧupar) نر.م. بلا، آفت، تکه، ناورین.
**زغومی** (zǧumay) نر.م. تندوره، غړومبی، بغری، زخم، ګرداو، ګرداب، څرخاو، چرخاو، ګمنه.
**زغومې** (zǧume) ښځ.ج. وچغنه، وزغنه، وژغنه، اوژغوني، د وزو وړی.
**زغونډی** (zǧunḍay) نر.م. وگ. زغبنډی.
**زغه** (zǧa) نر.ج. غز، د غزه هغه ونه یا بوټی چې د هغه له څانګو او لښتو نه کجاوې جوړوي.
**زقوم** (zaqum) نر.م.ج. زقم؛ پمنی، پمنکی، توهر، یو ډول تریخ نبات دی.
**زک** (zak) نر.م. ۱) د غوړو ګوډی، د غوړیوژی، د غوړو مشک؛ ۲) شناز، شناغ، خیګ.

زکات (zakāt) نر.م. ۱) د اسلام د پنځو بناوو څخه یوه بنا دي؛ ۲) وده، نمو؛ ۳) پاکي، سپېڅلتیا ۴) صدقه.

زکام (zukām) نر.م. وگ. رېزش.

زکانه (zakāna) ښځ.م. هغه شین تکی چې د محرقه د ناروغی په جریان کې پیدا کېږي.

زکبوری (zakbūray) نر.م. زرکبوری، زرکونی، د زرکې بچی.

زکندن (zakandān) نر.م. وگ. ځنکدن.

زگ (zag) نر.م. وگ. ځگ.

زگال (zagāl) نر.م. وگ. ځگال.

زگروا (zgarwa) ښځ.م. زگېروی، فریاد، نالښت.

زگول (zagawal) مص. مت. ۱) په ځېږ راوستل، په ځگ راوستل؛ ۲) شارېل، منبل؛ ۳) ترتیاکلي حد د خمیردان د اوړو زیاتول.

زگېدل (zagedāl) مص. ل. ۱) په ځگ راتلل، په کف راتلل، ځگ کول؛ ۲) شارېل کېدل، منبل کېدل؛ ۳) په کاسه کې چې شلومبې وي، دومره ډوډۍ ماتېدل چې له ځنډو یې توي شي.

زگېروی (zagerway) نر.م. فریاد، نالښت.

زگېرل (zgeral) مص. مت. کیندې اچول، غېټ غېټ تکونه ایستل، خام کوک کول.

زل (zal) نر.م. ۱) ځل، تل، د باروړونکي حیوان د شا کېږه؛ ۲) د خنجر وار، د توري او چړې گوزار.

زلال^(۱) (zulāl) ص. نر.م. ۱) پاکي او رڼې اوبه؛ ۲) زنگال، د واورې چینجی.

زلال^(۲) (zalāl) ص. نر.م. ۱) لېونی؛ ۲) مج. ظالم.

زلالیه (zulāliya) زلاله، مایع ده چې د قرنیې او د سترگې د عدسیې تر منځ موجوده ده.

زلپی (zulpay) ښځ.م. کونده، زلفی؛ د اوسپنې یوه کړۍ ده چې په دروازه کې تک وهل کېږي او بیا زنځیر پکې اچول کېږي.

زلخوړتوب (zalxūztob) نر.م. زیاته لوږه، ډېره لوږه، زلخوړتیا.

زلخوړی (zalxūṛay) ص. نر.م. زیات وږی.

زلخوړي (zalxūṛi) ښځ.م. زیاته لوږه، لوږه.

زلزله (zılzıla) ښځ.م ۱) د ځمکې خوځېدنه، د ځمکې لړزېدا؛ ۲) رېږدېدنه، خوځېدنه، ښورېدنه.

زلزله سنج (zılzılasanj) نر.م. زلزله تاکونکی.

زلف عروس (zulfıʕarūs) نر.م. (خ.) یو ډول لیک دی چې د حروفو وروستۍ یې الغه وي.

زلفه (zūlfa) ښځ.م (ج. زلفې) څنه، زولفه، کوڅې.

زلقېدل (zalqedāl) مص. ل. وگ. ځلېدل.

زلل (zalāl) نر.م (ج. زللونه) زیان، تاوان، ضرر.

زلکېدل (zalkedāl) مص. ل. وگ. ځلېدل.

زلما (zalmā) ښځ.م. د ژنې توب وخت، ځواني.

زلمکی (zalmakāy) ص. نر.م. ژنکی، ځوانکی.

زلموټی (zalmōtay) ص. نر.م. ځلموټی، نوی زلمی، نوی ځوان، ژنی، ځوانکی.

زلمی (zalmāy) ص. نر.م. (ج. زلمیان) ځوان، ځلمی، ژنی، رسېدلی، بلوغ ته رسېدلی.

زلمي توب (zalmitōb) نر.م. ځواني، ژنیتوب.

زلند (zalānd) ص. نر.م. جابر، ظالم، مستبد.

زلوچه (zaloča) ښځ.م. زلیچه، قالینچه.

زلونه (zalwana) ښځ.م. وگ. زولانه.

زله (zila) ص. نب. ستړی ستومانه.

زلینه (zalīna) ص. ښځ.م. فاحشه، بداخلاقه ښځه.

زم (zam) نر.م. ۱) گوزار، وار؛ ۲) زخم، ټپ، پرهار؛ ۳) د «زه هم» مخفف.

زما (zma) ض. د متکلم مفرد اضافي ضمیر دی.

زمام (zımām) نر.م. ۱) واگی، جلو، جلب، عنان، مهار؛ ۲) مسؤلیت، شرسته.

زمامدار (zımāmdār) ص. نر.م. (ج. زمامداران) ۱) واکدار، واکمن؛ ۲) رئیس، مشر.

زمان (zamān) نر.م. ۱) وخت، وقت، مهال، شیبه، روزګار، عصر؛ ۲) دهر؛ ۳) اجل، مرګ.

زمانه (zamāna) ښځ.م. ۱) وخت، عصر، زمان، پېړۍ؛ ۲) مج. خلک، خلګ.

زمانه ساز (zamānasāz) ص. نر.م. هغه څوک چې ځان د وخت له شرایطو سره برابروي.

زماني (zamāni) ص. نب. د زمان، په زمان پورې اړوند، د زمان مربوط.

زمبر (zambār) نر.م ۱) ګڼ او ګور ځنګل؛ ۲) کپر، منډاوو، غاښور؛ ۲) لوړ او جګ غر.

زمبک (zumbāk) نر.م. ۱) زنبق، زمبق، زنبک، سوسن، یو ډول ګل دی؛ ۲) و ګ. زومبک ۲).

زمبور (zambūr) نر.م. مچی، ډمبره، غومبسه.

زمبولی (zambōlay) نر.م. ۱) ورکوټی جوال، وړوکی غوندی؛ ۲) وړوکې پانې لرونکی څانګه

زمبه (zambā) ص. نب. ۱) زنبه، ګڼ، ګور، ببر؛ له وښبتانو ډک؛ ۲) ښځ.م. ځمبه، سترګک، د سترګو اشاره، زمبی، زنبی.

زمبېدل (zumbedal) مص. ل. ۱) پرلارې باندې کرار کرار تلل؛ ۲) په تنبلۍ سره کار کول؛ ۳) بانه رېبدل.

زمبېل (zambel) نر.م زامبېل، زنبېل، یوه آله ده چې په دوو تنو نیول کېږي او خاورې او... په کې وړل کېږي.

زمچ (zamč) نر.م. ج. رمڅ، و ګ. خوری[۴].

زمرد (zamarud) نر.م. ج. یو ډول قیمتي معدني شین کانی دی چې غمي ورڅخه جوړوي.

زمرک (zmarāk) ا. زمرګوټی، زمریچی، ووړ زمری، د ښارندوی هلک.

زمرلای (zmarlāy) ص. نر.م. زمریالی، توریالی.

زمرماتی (zmarmātay) ص. زمری ماتوونکی، زړور.

زمری (zmarāy) نر.م. (ج. زمري، زمریان) ۱) یو قوي او ځیرونکی حیوان دی؛ ۲) ص. نر.م. زړور، دلاور، مېړنی؛ ۳) غبنتلی، پیاوړی.

زمریالی (zmaryālāy) ص. نر.م. زړور، مېړنی، مړنی، تکړه.

زمریالی نمري (zamaryālaynmari) ښځ.م. دریشي

زمرین (zamarīn) ښځ.م ۱) زامرین، سخت ساړه، ډېره یخني؛ ۲) شبنم، پرخه؛ ۳) د دوړخ هغه برخه چې ډېر سخت ساړه لري.

زمزم (zamzām) نر.م. ۱) د په مکه معظمه کې د یوه چینه نوم دی؛ ۲) جن. ددې چینه اوبه.

زم زموږلی (zamzmozālay) نر.م. مراوی سری، د زخم او تپ له لاسه غلی او عاجز سړی.

زمزمه (zamzamā) ښځ.م (ج.زمزمې) ۱) بونګېدنه، ترنم کول؛ ۲) تالنده؛ ٤) دزمري اواز.

زمکه (zmāka) ښځ.م. و ګ. ځمکه.

زمکی غوښه (zmakāyğwāsa) ښځ.م. پرېره، ګوبلکه، تیتری، مرخېړی.

زمن (zamān) ښځ.م. زمنه، وظیفه، ورد، لسوانی.

زمنه (zamanā) ښځ.م. دنده، وظیفه، کار.

زمني (zamanāy) ص. نر.م. وظیفه پېژندونکی.

زموخ (zmox) ص. نر.م. ج. زموخت؛ ۱) هر هغه څه چې د خپل خوند سره دخولې عضلات سره راټول کاندي؛ ۲) تندسری؛ ٤) بخیل.

زموخ والی (zmoxwālay) نر.م. زموختیا، زموخت والی (تندوالی، تېزوالی).

زموږ (zmūz) ض. زموږ، زموږه، زموږه، د جمع متکلم اضافي ضمیر دی.

زمول (zmol) ص. نر.م. ج ۱) مړاوی شېته، شیته، ناتوانه، کمزوري، ضعیف، جینګړ؛ ۲) د مور په نس کې مړ شوی بچی.

زمولتیا (zmoltyā) ښځ.م. زمولتوب، مړاوي توب، جینګتوب، زمول والی، جینګړ توب.

زمولګر (zmolgar) ص. زمولونکی، مړاوی، (نرمي ترمي) کوونکی، ځپونکی.

زمولول (zmolawəl) مص. مت. ۱) مړاوی کول، کمزوری کول؛ ۲) ځپل، تر فشار لاندې راوستل.

زمولېدل (zmoledəl) مص. ل. ۱) مړاوې کېدل، جینګېدل، شیته کېدل؛ ۲) ځپل کېدل.

زمه (zamā) ښځ.م. و ګ. خوري.

زمی (zmay) ښځ.م. یو ډول کوچنی بوټی دی.

زمېر (zmer) نر.م. زمېرنه، ساتنه، حفاظت کول.

زمېری (zameray) ص.نر.م. ساتونکی، محافظ.

زمیندار (zamindār) ص. نـر.م. ۱) دځمکې خاوند؛ ۲) نر.م. بزګر، دهقان، شریک.

زمیني (zamini) ص.نب. دځمکې، دځمکې پورې اړوند، د ځمکې له لارې.

زنا (zınā) ښځ.م. زناء، زنی؛ ۱) ل. م. بد عمل؛ ۲) اص. د اسلامي شریعت په اصطلاح د ښځې سره د نر ناروا یوځای کېدو ته وایي.

زنار (z(ı,u)nār) نرم. کاپـرمزی؛ ۱) یو زنځیر دی چې اور پالونکي یې تر خیلې ملا تړي؛ ۲) یوه غاړګۍ ده چې نصارا یې په غاړه کوي.

زناکار (zınākār) ص. نر.م. زاني، زناکوونکی.

زنانه (zanānā) ص. نب. د ښځو، ښځینه.

زنبر (zanbār) نر.م. و ګ. زنبېل.

زنبق (zanbāq) نر.م. و ګ. زمبک.

زنبل (zanbəl) مص. ل. ځمبل، سترګک وهل، په سترګو اشاره کول.

زنبنه (zanbānā) ښځ.م. سترګک، دسترګې اشاره.

زنبورک (zanbūrāk) نرم. ۱) دوګانه، د تاکـونو هغه لښتې چې خښې کـړي شـوي وي او هغه لښتې ریښې وکړي؛ ۲) یو ډول پخوانی غشی؛ ۳) یو ډول توپ ته ورته پخوانۍ وسله وه.

زنبه (zanbā) ص. ۱) و ګ. زمبه[1]؛ ۲) ښځ.م. سترګک، د سترګې اشاره.

زنبېل (zanbel) نر.م. و ګ. زمبېل.

زنجاني کوفي (zanjānikofi) (خ.) د کـوفي لیک په ډولو کې یو ډول لیک دی.

زنجپیل (zanjapil) نر.م. ج. زنجبیـل، زنجفیل، سونډ، شونډ، یوه ګیاه ده چې په ښخ کې یې یو ډول مرغړې پیداکېږي چې هماغه زنجبیل دی.

زنچخی (zancāxay) نـر.م. زنخـدان، د زنې د سر منځنۍ او ژوره برخه.

زنځ (zanj) نر.م. و ګ. خوری[4].

زنځه (zanja) ښځ.م. سـرسوبنده، زمځه، شوبله، یوه ځمکنۍ خزنده ده چې ډېرې پښې لري.

زنځی[1] (zanjay) ښځ.م. د ګانو نری نری او وړې وړې کړۍ (حلقه).

زنځي[2] (zānji) ښځ.م. و ګ. زرنځه.

زنځیر (zanjir) نر.م. ځنځیر، سلسله، د سره مښتو فلزي کړیو یوه کتېدونکې لړۍ ده.

زنځیرخپور (zanjirxpor) ا. پوځي بولۍ (قومانده) د خپرېدو یا خورېدو (تیتېدو) لپاره.

زنځیری (zanjiray) ښځ.م. د پښتو هغه تاریخي لیک دود دی چې خوشال خټک جوړ کړی دی.

زنخدان (zanaxdān) نر.م. و ګ. زنچخی.

زنخول (zanxwāl) نرم. د زړه او ینې (اینه) تر منځ نری پرده.

زند (zand) د زردښت مذهبي کتاب، د اوستا شرحه.

زندان (zındân) نر.م. بندیخانه، جهل، محبس.
زنداني (zındânī) ص.نب. ۱) بندي، محبوس؛ ۲) د زندان، په زندان اړوند.
زندرک (zandarak) نر.م. د لاندې ژامې (زامه) اوزنې هډوکی.
زندۍ (zındāy) ښځ.م. زیندۍ، د غرغرې پړی.
زندیق (zındiq) ص. نر.م. ج. کافر، ملحد.
زنډی (zanḍāy) نر.م. وګ. څونډی ۲).
زنزاوی (zanzáway) نر.م. څاڅکی، قطره.
زنزول (zanzawâl) مص. مت. وګ. څنځول.
زنزي (zānzi) نر.ج. زنځي، توري او بدبویه ختې.
زنزېدل (zanzedâl) مص. ل. وګ. څنځېدل.
زنغلی (zanğalāy) نر.م. زنګنی، زنګنی، هغه پایخه چې زاړه پر توګ ته اچول شوې وي.
زنکدن (zankadân) نر.م. وګ. څنکندن.
زنکۍ (zankāy) ښځ.ج. وګ. څیره ۲).
زنګ (zang) نر.م. ۱) ګینګړی، زنګوله، ړنګ؛ ۲) هغه ماده چې د هوا او رطوبت په مجاورت کې داوسپنې پرمخ پیدا کېږي؛ ٤) ډېره ساړه؛ ۵) تلی.
زنګالي (zangâli) ص. نب. یو ډول رنګ دی چې زنګ وهلي مس ته ورته دی.
زنګل (zangâl) مص. ل. وګ. زانګل.
زنګن (zangân) ص. نر.م. ۱) زنګ لرونکی، هغه څه چې زنګ یې نیولی وي؛ ۲) خیرن او ناپاک (سړی).
زنګنی (zanganāy) نر.م. وګ. زنغلی.
زنګوچ (zangoč) نر.م. پینګو، زانګو، زنګویه.
زنګوره (zangōra) ښځ.م. ډ تیږو موقتي کور.
زنګوری (zanguray) نر.م. وابنکی، ډنډوری، وښکالی، دانګورو وږی، ګونګی.
زنګوګرافي (zangogrāfi) ښځ.م. زینګوګرافي د چاپ لپاره د جستو پر پلېټ باندې د کېندنې ګرونې او حکاکۍ فن یا عملیه.
زنګول (zangawâl) مص. مت. ۱) تالی ورکول، په زانګو کې ښورول؛ ۲) مج. خبره اوږدول، یوه موضوع اوږدول یا ځنډول.
زنګوله (zangolā) ښځ.م. زنګ، ګینګړی، جرس.
زنګولۍ (zangolāy) ښځ.م. د زړه غم او خپګان، د زړه سوخت، د زړه خوږ.
زنګون (zangūn) نر.م. تکې، توتکی، هغه برخه چې پتون (ورون) او پنډۍ سره نښلوي.
زنګونبند (zangūnbānd) ا. زنګنی، زنګون پټی.
زنګون کېږد (zangūnkēzd) نر.م. عس. د عسکری یوه قوماندہ ده چې د هغې په اساس خپله ښی پښه د یوې خطوې په اندازه وشاته اچوي، هغه غبرګوي او باندې کښېني.
زنګون کښ (zangūnkeš) نر.م. پوځي بولی، زنګون مات.
زنګي[1] (zangai) ص. نب. ۱) زنګ نیولی، زنګ وهلی، زنګ خوړلی؛ ۲) تور پوستی، حبشي.
زنګي[3] (zangi) ص. نر.م. د پښتنو د ملي اتڼ ماهر اتنچي.
زنګېدل (zangedâl) مص. ل. ۱) تال خوړل، د زانګو ښورېدل؛ ۲) یوه موضوع یا خبره تالېدل.
زنل (zanâl) مص. مت. ۱) پیوندول، په ونه کې پیوند اینبودل؛ ۲) ننه ایستل؛ ۳) مج. اېلل.
زننه (zanâna) ښځ.م. ۱) پیوندونه، ونه پیوندونه؛ ۲) ځایونه، ننه ایستنه؛ ۳) اېلنه.
زنه[1] (zāna) ښځ.م. ۱) ذقن، د لاندې شونډې او مرۍ ترمنځ هډوکی؛ ۲) هغه رنګ چې له آش ورکولو وروسته څرمن ته ورکول کېږي.

**زنه**[۲] (zna) ښځ.م. و گ. زمی.

**زنغوزی** (zanǧozāy) نر.م. جنغوزی، جنغوزی، زنغوزی، جلغوزی، نغوزی، زنغوزی.

**زنکی** (zaṇkāy) ص.نر.م. ژنکی، زلمی، ځوانکی.

**زنکی** (zaṇkāy) ښځ.م. و گ. زنکی.

**زنکی نار** (zaṇkaynār) نر.م. گردی کندوله، یو ډول نبات دی چې ښځ یې پټانې غوندې دی او اوم خوړل کېږي.

**زنی** (zāṇay) نر.م. ۱) زونه، زړی، زونی، خسته؛ ۲) ص. نر.م. ژنکی، ځوان، زلمی.

**زنیه لار** (zaṇyalār) ښځ.م. (پ. ک.) یو ډول دود (رسم) دی چې د واده په شپه د زوم د راتگ په وخت د جینۍ د کلي خواران له زومه راتاوېږي او زوم دوی ته پیسې ورکوي.

**زو**[۱] (zo) ښځ.م ۱) زېږېدنه، زېږونه؛ ۲) ند. زویه!، ځو!؛ ۲) دزوی لنډون؛ ۳) ت. ت. زوآ، زوا، یو (ترندتوک). دی چې د متحرک، حیواناتو مانا لري، لکه: د زولوجي.

**زو**[۲] (zu) ښځ.م. ۱) د اومې خښتې توته؛ ۲) نر.م. ژوبن، باغ وحش.

**زوا** (zwā) ښځ.م. عذر، زاري، سینتی، سوال.

**زواک** (zwāk) نر.م. و گ. ژواک.

**زواگر** (zwāgār) ص. نر.م. زواکوونکی، زاري کوونکی، سینتی کوونکی.

**زوال** (zawāl) نر.م. ۱) لیرې کېدل؛ ۲) ورکېدل؛ ۳) له برمه لوېدل؛ ٤) غوړځېدل؛ ٥) له سر نه د لوېدیځ و لور ته د لمر متمایل کېدل.

**زوامده** (zwāmda) ښځ.م. یو ډول بوټی دی چې له هغه نه یو ډول د تې ملهم جوړېږي.

**زوانگه** (zwāngā) ښځ.م. ځوانکه، یو ډول دانه ده چې د ځوانۍ په وخت په مخ باندې راخېژي.

**زوبل** (zobəl) ص.نر.م.ج. و گ. ژوبل.

**زوتول** (zawtawəl) مص. مت. ۱) ضبطول؛ ۲) یادول، زده کول.

**زوج** (zawj) نر.م. ۱) مېره؛ ۲) جوړه، جفت.

**زوجه** (zawjā) ښځ.م. ارتینه، ماینه، ماندینه.

**زوجي** (zawjī) ص. نب. د زوج، په زوج اړوند.

**زوخلول** (zūxlawəl) مص. مت. و گ. ځکلول.

**زودل** (zodəl) مص. مت. زوول، زېږول، زوکول.

**زور**[۱] (zor) نر.م (ج. زورنه) ۱) جبر، ظلم، تعدي؛ ۲) قدرت، توان.

**زور**[۲] (zwar) نر.م. ۱) فتحه، زبر؛ ۲) و گ. ژور.

**زور**[۳] (zūr) ص. نر.م. ۱) ژر اورېدونکی؛ ۲) ځیر، متوجه؛ ۳) هغه سوری چې د کلالي او کوډرې پخولو د اور غالي په دواړه خوا کې جوړېږي.

**زورتوب** (zūrtob) نر.م. ۱) په غوږ ښه اورېدنه؛ ۲) ځیر کېدنه، متوجه کېدنه.

**زورخج** (zorxaj) گر. خوځند خج، خوځند فشار.

**زورزیاتی** (zorzyātay) نر.م. تېری، ظلم، ستم.

**زورکی** (zwarakāy) نر.م. خفیف زور، په پښتو او ځینو نورو ژبو کې یو ځانگړې حرکت دی چې نه زور دی او نه زېر لکه په پسه کې د «س».

**زورل** (zorəl) مص. مت. تهدیدول، ځورول، زېرل، په عذابول.

**زورلې** (zorāle) ښځ.م ۱) تهدیدونه؛ ۲) ښکنځل، ښکنځلې، سپورې ستغې.

**زورمتی** (zərmuṭay) ص. نر.م. زورور، ظالم.

**زورمتي** (zormuṭi) ښځ.م. ظلم، جبر، زیاتی.

**زورمند** (zūrmənd) ص. زورور، زورمن، زورواک، سرزور.

**زورنه** (zorāna) ښځ.م. فشار، تهدید.

**زورواک** (zūrwāk) ص. و گ.: زورمند.

زورواكي (zūrwāki) خپلسرواكي، مطلق العناني.

زوروالى (zūrwālay) نر.م. و گ. زورتوب.

زورور (zōrawar) ص. نر.م. ج. ۱) د زور خاوند، د قدرت خاوند؛ ۲) ظالم، جابر.

زورورتوب (zorawartōb) نر.م. ۱) زورورتيا، طاقت، زوروروالى؛ ۲) جابرتوب، ظالم توب.

زوړ (zoṛ) ص. نر.م. (ج. زاړه) ۱) د ډېر عمر خاوند، عمر خوړلى؛ ۲) د نوي مقابل، هغه شى يا څه چې زياته زماني موده پرې تېره شوې وي.

زوړپال (zōṛpāl) ص. زوړ خوښى، زوړچارى.

زوړتوب (zōṛtōb) نر.م. زوړوالى، زړښت، زړتيا، زوړتيا، بوډاتوب، سپين ږيرتوب.

زوړچارى (zōṛčāray) ص. و گ.: زوړپال.

زوړكى (zōṛkay) ښځ.م. د ماشومانو د بېديو يو ډول لوبه ده.

زوړكى (zōṛakay) نر.م. زړوكى، ټيكرى، پړونى.

زوړل (zoṛal) مص. مت. و گ. زړول.

زوړوت (zōṛwat) نر.م. (جغ.) زړه دره، پراخ دره.

زوړهڅى (zoṛhacay) شاتګ هڅې، زوړ خوښى.

زوړى (zwāṛay) نر.م. پنډ، پېټى، بار، ووزه.

زوز (zōz) نر.م. و گ. څوز.

زوزاد (zawzād) نر.م. زوزات، اولاده، نسل.

زوزات (zawzāt) ا.. و گ.: زوزاد.

زوزكوډى (zozkūḍay) ښځ.م. خارخانه، څپره، د څوزانو څخه جوړ شوې څپره.

زوزګوړى (zozguṛay) نر.م. ترنجبين، ګوړى، زوزڅاوله.

زوزيانه (zozyāna) ص. ښځ.م. څوزيانه، څوز لرونكى، اغزي لرونكى، زوزداره.

زوږ (zwāẓ) ص. نر.م. ج ۱) تريخ؛ ۲) زهر؛ ۳) قحط، نايابه؛ ٤) نر.م. څوږ، شور غوغا.

زوږا (zawazā) ښځ.م. د كباب يا د وريتو اواز.

زوږسوران (zwaẓsūrān) نر.م. چغې سوران، نارې سوران، كوكارې، بغارې.

زوږم (zwāẓəm) نر.م. وږم، بوى، رايحه.

زوږند (zwaẓand) ص. زوږور، له شورو زوږه ډك.

زوږوزوږ (zwaẓozūẓ) نر.م. ج. بامبو، بېځايه او بېخونده شورماشور.

زوږېدل (zwaẓedal) مص. ل. شور او څوږ كول.

زوښ (zoṣ) نر.م جوش، خوټونه، خوټېدنه.

زوښا (zoṣā) ښځ. م. ج. و گ. څوښا.

زوښتى (zoṣtay) نر.م. يو ډول بې قمره ونه ده.

زوښول (zoṣawāl) مص. مت. جوشول، خوټول.

زوک[۱] (zuk) نر.م. تكليف، ربړ، زحمت، كړاو.

زوک[۲] (zok) نر.م. د كاريز كلكه شوې خټه، مغزينه خټه.

زوكړه (zōkra) ښځ.م. زېږېده، تولد، زېږېدنه.

زوكړى (zokāṛay) مف. نر.م. زېږولى، پيدا كړى.

زوكلول (zūklawāl) مص. مت. كړول، څورول، ربړول، څوكلول.

زوكول (zokawāl) مص. مت. زېږول، پيدا كول.

زوګامېټ (zogāmiṭ) نر.م. بيا. د متحرك جنس سلول.

زوګرافي (zogrāfī) ښځ.م. تطبيقي حيوان پېژندنه.

زوګه (zūga) ښځ.م. ۱) يو ډول بوټى دى چې اوږد ډنډر كوي؛ ۲) زوله، د كورسامان او كالي.

زول[۱] (zawāl) نر.م. د زوال بوټى، يو ډول تريخ بوټى دى چې ژېړ ګل كوي.

زول[۲] (zūl) نر.م ۱) څول، پرله پسې باران او واوره؛ ۲) سخته يخني، ډېر ساړه او يخ باد.

زول[۳] (zol) نر.م. كولک، دريڅه، دريچه، روزان.

زولال (zulāl) ص. نر.م. ظالم، جابر، مستبد.

**زولاندی** (zulánday) مف. نر. م. مظلوم.

**زولانه** (zawlānā) ښځ. م. (ج. زولانې) بېړی، زولنه، یوه فلزي آله ده چې د بنديانو پښو ته وراچوله کېږي.

**زولن** (zawlān) ص. نر. م. د زوو ډک (پرهار)، له نوه ډک پرهار، زوی لرونکی زخم.

**زولوجي** (zoloji) ښځ. م. زولوژي؛ ۱) ځناور پوهنه، حیوان پېژندنه، ژوي پېژندنه.

**زوله** (zola) ښځ. م. ۱) زوګه، د کور سامان؛ ۲) هغه د ٦ مترو جوال یا غوندی؛ ۲) استرلرونکی زوړ کمیس؛ ۳) ځوله، شلم، شاړې واړې.

**زوله زوله** (zolazola) ص. نب. ډېرشلم، شواړ، بې نظمه او بې ترتيبه شی.

**زولی** (zolāy) نر. م. د لمڅيو جوال دی چې د غوړيو ژی په کې ایښودل کېږي.

**زولۍ** (zolāy) ښځ. م. ځولۍ، جولۍ، لمن.

**زولی زولی** (zolayzolay) ص. نر. م. سست پست، شلم شلم، شواړشواړ.

**زولي زنبېلي** (zolizanbeli) نر. ج. ۱) زاړه کالي، زړې توتې؛ ۲) د سنيو يا پوستکي کالی چې سره وړلو لپاره د خره په سر اچول کېږي؛ ۲) ځولۍ، د توت څنډلو لپاره توکر.

**زوم**[1] (zum) نر. م. (ج. زومان) د لور مېړه.

**زوم**[2] (zwam) ص. نر. م. ۱) لږ ایستلی شوی، کم شوی؛ ۲) د یو څیز ورکېدل، نایاب کېدل.

**زومبک** (zumbāk) نر. م ۱) زمبک، د جوارو څنې د جوارو د وړې ويښته؛ ۲) ځونډی، زنبک.

**زومبک بمونه** (zumbākbamuná) ا. وړین یا وړيز بمونه، خوشه يي بمونه.

**زومبک ستوري** (zumbākstori) نر. ج. ۱) و گ. پېړونې؛ ۲) څيره، پره، لیکه؛ ۳) اړخ، څنډه.

**زومبکی** (zumbəkay) نر. م. ۱) ځونډکی، وړوکی زومبک؛ ۲) والی، گوشواره، زېرگوشې.

**زومبول** (zumbawəl) مص. مت. و گ. ځومبول.

**زومتوب**[1] (zumtob) نر. م. زوم والی، زوم کېدنه.

**زومتوب**[2] (zwamtob) نر. م. لږوالی، کمښت.

**زومګاړی** (zumgāṛay) نر. م. هغه سړی چې له زوم سره یو ځای د خسر کره ځي.

**زومل** (zuməl) مص. ل. ژمنه کول، ژبه کول.

**زومنه** (zwāmna) ښځ. م ۱) زېمنه، ښوروا، شوروا، شوربا؛ ۲) زیان، خساره، تاوان.

**زومی کنده** (zumaykəndā) ښځ. م. وښیانه ځمکه، وابښه لرونکې ځمکه.

**زون** (zawan) نر. م. ۱) و گ.: زولن؛ ۲) طبقه؛ ۳) قلمرو؛ ٤) مدار، کمربند.

**زونبه** (zúnba) ښځ. م. سترګک، سترګک وهنه.

**زونډیګر** (zundigar) ص. نر. م. تېنيار، ځونډېګر، ځونډی جوړونکی..

**زونګه** (zungā) ښځ. م. ۱) زونګی، انګازه، د اواز انعکاس، ۲) ګونګوسی، آوازه.

**زونی** (zúnay) نر. م. يو ډول ګنډون او ځونډی دی چې د دسترخان د څنډو لپاره جوړېږي.

**زونۍ** (zuṇay) نر. م. زړی، زونه، دختکي، هندوانې او ... زړی یا تخم.

**زووب** (zawōb) نر. م. نم، نو، زوه، د تپ زوه.

**زوول** (zowəl) مص. مت. ۱) راوړل، زېږول، پیدا کول؛ ۲) ژوول، ژېيل؛ ۳) رسبیل، سولول، زوديل، زدویل.

**زوه** (zawa) ښځ. م. (ج. زوې) نو، د تپ یا دانې ژړې اوبه، ریم.

**زوی** (zuy) نر. م. (ج. زامن) زی، بچی، د انسان نارينه بچی یا اولاد.

زوېرګی (zwergay) نر.م. زګېروی، نالېښت.
زوی مړی (zuymāṛay) ص. نر.م. د هغه چا چې زوی مړ وي.
زوی نیو (zuyniw) نر.م. زوی بللی، دیني زوی.
زوی والی (zuywālay) نر.م. زوی واله، زوولي، زوی توب.
زه (zə) ض.م. (ج. موږ) د مفرد متکلم ضمیر دی.
زهد (zuhd) نر.م. تقوا، پرهېزګاري، ځان ساتنه، پرهېز، نړۍ ته بې اعتنایي.
زهر (zahar) نر.م. ج. ۱) زوږ، زار، سم، هغه شه (دارو) چې وژونکي وي؛ ۲) مج. ترخه خواږه.
زهرا (zahrā) ص. ښځ.م. ځلانده، روښانه.
زهرجن (zaharjan) ص. زهرژلی، زهرلړلی.
زهرخور (zaharxōr) ص. لوچک، بدمعاش.
زهرژلی (zaharžalay) ص. و ګ.: زهرجن.
زهرمړی (zaharmaaṛay) ص. په زهرو مړ شوی یا وژل شوی.
زهرموره (zaharmōra) ښځ.م. زهرمهره، زارموره، یو ډول مرۍ ده چې د زهرو علاج پرې کوي.
زهروب (zaharōb) ا. د زهرو اوبه، زهرجنې اوبه.
زهره[1] (zuhrā) ښځ.م. د ماښام سترګه، د ماښام ستوری، وینوس، ناهید.
زهره[2] (zahrā) ښځ.م. زاره، تریخی، دصفرا کڅوړه.
زهره ترکی (zahratrakay) و ګ. زاره ترکی.
زهري (zahri) ص. نب. زهردار، د زهرو، زهروي، زهرو پورې اړوند.
زهریت (zahriyat) نر.م. ۱) و ګ. زهر؛ ۲) دزهرو خاصیت، سمیت.
زهوب (zahōb) نر.م. ج. زوه، زوې؛ دزخم اوبه.
زهول (zahawāl) مص. مت. خوارول، ضعیفول، د غم یا ناروغی له امله کمزوری کول..

زهېدل (zahedāl) مص. ل. د غم یا ناروغی په سبب کمزوره کېدل.
زهیر (zahir) ص. نر.م. ج. ۱) ناتوانه، کمزوری، ضعیف؛ ۲) په تکلیف شوی؛ ۳) غمجن، خپه.
زهیرتوب (zahirtōb) نر.م ۱) زهیروالی، زهیرتیا، کمزورتیا؛ ۲) تکلیف، عذاب؛ ۳) غمجنتوب.
زهیرول (zahirawāl) مص. مت. ۱) ناتوانه کول، کمزوری کول؛ ۲) غمجنول؛ ۳) خپول، خجالتول ٤) تکلیف ورکول..
زهیرېدل (zahiredāl) مص. ل. ۱) کمزوره کېدل؛ ۲) خپه کېدل؛ ۳) په عذابېدل؛ ٤) خجل کېدل.
زې (ze) ښځ.م. ۱) د «ز» توري اواز او تلفظ؛ ۲) د «زه یې» لنډون دی.
زۍ (zay) ښځ.م. ج. و ګ. ژۍ[3].
زی (zay) نر.م ۱) ژی، مشک، ګوډی، خیګ، شناز؛ ۲) زوی، اولاد؛ ۳) ور. وروستاړی دی چې د قبیلوي واحد د اصلي نامه په ضمیمه راځي.
زیا (zyā) ښځ.م. یادګیرنه، یادونه، احوال پوښتنه.
زیات (zyāt) ص. نر.م. ج. ډېر، زښت، زیاد.
زیاتره (zyātara) ص. نب. ۱) ځښت زیات، ډېر زیات، زښت ډېر؛ ۲) اکثره، اکثراً.
زیاتوالی (zyātwālay) نر.م. ډېروالی، زیاتوب، ډېرښت.
زیاتول (zyātawal) مص. مت. ۱) ډېرول، جمع کول، تولول؛ ۲) لوړول، داوطلبي کول.
زیاتی (zyātay) نر.م. ۱) تیری، زور، ظلم، تجاوز، له حده اوښتنه؛ ۲) ډېروالی، زیاتوالی.
زیاتي (zyāti) ص. نب. اضافي، له حده وتلي.
زیاتېدل (zyātedal) مص.ل. ډېرېدل، اضافه کېدل، پرېمانه کېدل.
زیار (zyār) نر.م. ربړ، زحمت؛ کوښښ، جد وجهد.

**زیارت** (zyārat) نر.م. (ج. زیارتونه) ۱) قبر؛ ۲) لیدنه، ملاقات؛ ۳) په مذهبي اصطلاح یعني مقدس ځای یا د ولي مقبره.

**زیارت گاه** (zyàratgàh) ښځ.م. ۱) هدیره، د ښخېدو ځای؛ ۲) د لیدنو کتنو ځای.

**زیارکښ** (zyārkāṣ) ص. نر.م. ۱) خواریکښ، زحمتکښ؛ ۲) کوښښي، زیارایستونکی.

**زیارن** (zyārən) ص. وگ. زیارکښ.

**زیارنه** (zyārana) ښځ.م. زیار، زحمت، کوښښ.

**زیاړه** (zyāṛa) ښځ.م. زیړه، ښکنځل، زیاړی.

**زیان** (zyān) نر.م (ج. زیانونه) ۱) تاوان، نقصان؛ ۲) نخسان؛ اولاد بې وخته غورځونه.

**زیانکاره** (zyànkāra) ص. نب. زیان رسوونکی، مضر، نقص رسوونکی.

**زیانمن** (zyānmən) ص. نر.م. نخساني شوی، تاواني شوی، نقصاني.

**زیانمنتوب** (zyānmantob) نر.م. تاوان، ضرر، زیان، نقصان ساره، نقص.

**زیانول** (zyānawə̄l) مص. مت. ۱) نقصانول، تاوان کول؛ ۲) اولاد نخسانول.

**زیانېدل** (zyānedə̄l) مص. ل. ۱) تاوانېدل، نقصان کېدل؛ ۲) اولاد نخسانېدل.

**زېب** (zeb) نر.م. ۱) زینت، ښه ښکاره کېدنه، ښه برېښېدنه؛ ۲) ښایېدنه.

**زېبا** (zebā) ص. نب. ښکلی، ډولي، ښایسته.

**زېبانکه** (zebānka) هغه اوسپنه چې د ژرندې د لاندني پله څخه راوتلې دی.

**زیتر** (zitār) نر.م. (مو.) د موسیقۍ یو راز آله ده چې سنتور یا قانون ته ورته ده.

**زیتون** (zaytūn) نر.ج. ښون، ښاون؛ یوه ونه ده چې مېوه یې بیضوي ډوله وي.

**زیج** (zij) نر.م ۱) زیج، د نجوم حساب؛ ۲) دستورو پېژندنې طریقه؛ ۳) ایسارېدنه، راګېرېدنه.

**زیر** (zir) ص. نر.م. ج. وگ. ځیر.

**زېر** (zer) نر.م. ۱) کسره؛ ۲) ق. لاندې، کوز، کښته؛ ۳) ملامت، خړ، پړ.

**زېربغلي** (zerbağali) ښځ.م. مو. زموږ د هېواد د فولکلوریکې موسیقۍ یوه لرغونې آله ده.

**زېربنا** (zerbinā) ښځ.م. بېخبنا، د روبنا مقابل؛ د تولیدي مناسبات جونګ.

**زېرخانه** (zerxāna) ښځ.م. زېرزمیني، تاکاوي.

**زیرک** (zirak) ص. نر.م. ج. وگ. ځیرک.

**زېرګا** (zerga) ښځ.م. ارګانه، د سهار او ماښام لپاره اوړه او کتغ.

**زېرګی** (zergay) نر.م. بلاڼه، زګېروی، نالښت.

**زېرمتون** (zērmatūn) نر.م. لوی زېرمځی، تحویلخانه

**زېرمه** (zērma) ښځ.م. (ج. زېرمې) ۱) ځېرمه، توښه، ذخیره، پس انداز، پاسره، اړوښتي.

**زېرمه تولی** (zermatolay) ص. سپماګر، زېرمه تولوونکی.

**زېرمه خور** (zermaxor) ص.نر.م. طرفدار، ګوند، پلوی، سېلګر، سپلندوی.

**زېرمه سات** (zermasāt) زېرمه کار، سپماګر.

**زېرمی** (zermāy) ښځ.م. غزی، یو ډول خړه او توربخنه مرغۍ ده.

**زېرنی** (zeranāy) ص. نر.م. شپېنی، بېګانی، پاتې سونی، شومانده خواړه.

**زیره** (zirā) ښځ.م. وگ. ځیره ۲).

**زېری** (zeray) نر.م (ج. زېري) ۱) خوشخبري، نېک خبر، ښه خبر؛ ۲) غومبک، د یو ډول لوخې تخم دی؛ ۳) د افغانستان د پښتو ټولنې اوونیزه

څېړونه ده چې په ۱۳۱۶ کال تاسيس شوې ده.

**زېړی ګړی** (zeraygaṛay) فا. نر. م. زېړی کونکی، زېړ ګړی، زېړي باني.

**زېړ** (zeṛ) ص. نر. م. ج. ۱) ژړ، ژېړ، يو ډول رنګ دی؛ ۲) نر. م. د صفرا تکليف، خواګرځېدل.

**زېړانکه** (zeṛanaka) ښځ. م. زردکه، زېړکه، يو ډول ژېړه مرغۍ ده.

**زېړبخن** (zeṛbaxan) ص. نر. م. ج. زېړ غلن، زېړونکی، ژېړبخن، ژړبخن.

**زېړپوستی** (zeṛpostay) ص. نر. م. ژېړ نژاده.

**زېړزبېښلی** (zeṛzbeṣalay) ص. نر. م. ۱) زېړ ښېښلی، رنګ الوتی؛ ۲) مج. وارخطا.

**زېړسورن** (zeṛsuran) نر. م. سرن، زېړ اس.

**زېړغنجي** (zeṛğanji) نر. م. و ګ. زردالو.

**زېړن** (zeṛan) نر. م. سمند آس، زېړ آس.

**زېړو**[1] (zeṛo) ص. نب. د زېړ مصغر؛ د معشوقې لقب.

**زېړو**[2] (zeṛu) ص. نر. م. ۱) د ژېړي په ناروغۍ اخته؛ ۲) ند. هغه چا چې رنګ يې ژېړ وي.

**زېړوالی** (zeṛwalay) نر. م. و ګ. ژېړوالی.

**زېړوب** (zeṛob) نر. م. ج. ۱) زهوب؛ ۲) زېړ، صفرا، د صفرا مايع.

**زېړوبی** (zeṛubay) نر. م. ۱) زهوب، د زخم ژېړې اوبه؛ ۲) ژړی (صفرا).

**زېړوتی** (zayaṛotay) نر. م. ژېړبخون، ژړوبره.

**زېړول** (zeṛawal) مص. مت. ۱) ژېړول، ژېړ رنګ ورکول؛ ۲) خجلول، خړول، شرمول.

**زېړه** (zyaṛa) ښځ. م. (ج. زېړې) زياړه، ښکنځا.

**زېړی** (zeṛay) نر. م. و ګ. ژړی[1].

**زېړېدل** (z(e,ya)ṛedal) مص. ل. ۱) ژېړېدل؛ په ژېړ رنګ اوښتل؛ ۲) خړېدل، شرمېدل؛ ۳) مج. وارخطا کېدل.

**زېږی** (zeẓay) نر. م. د بلبل په څېر يو ډول مرغۍ ده.

**زېږ** (zeẓ) نر. م. زېږېده، پيدا کېده، زېږېدل.

**زيږ** (ziẓ) ص. نر. م (ج. زيږه) ۱) څيږ، ديږ، د ښوی مقابل؛ ۲) کلک، غښتلی.

**زېږاړيکی** (zeẓaṛikay) ا. توليدي مناسبات.

**زېږځواک** (zeẓjwak) ا. توليدي ځواک، مولده قوه.

**زېږځی** (zeẓjay) ا. زېږنځی، زېږون ځای.

**زېږد** (zeẓd) نر. م. زېږېدنه، زوکړه، پنځون.

**زېږدی** (zeẓday) ص. ميلادي (کال).

**زېږدي نېټه** (zeẓdineṭa) ا. ميلادي تاريخ.

**زېږګه** (zeẓga) ښځ. م. د دوولسو ستورو نوم.

**زيږګی** (ziẓgay) نر. م. جيږګی، ششګی، جزګی.

**زېږمه** (zeẓma) ښځ. م. برزاله، جېږمه، و ګ. ځيزمه

**زېږنتون** (zeẓantun) نر. م. زايشګاه.

**زېږنځی** (zeẓanjay) نر. م. د زېږېدو ځای.

**زېږنده** (zeẓanda) ښځ. م. اوبه بيا راخوټېدل، اوبه بيا راوتل؛ ۲) اولاد، بچي، اولاده، بچيان.

**زېږنه** (zeẓana) ص. ښځ. م. نوجنه، زېمناکه.

**زېږنی** (zeẓanay) ص. زېږېدي، د زېږېدو (تولد، توليد) اړوند.

**زيږوالی** (ziẓwalay) نر. م. زيږتوب، زيږتيا.

**زېږول**[1] (zeẓwal) مص. مت. زوول، اولاد يا بچي پيدا کول، تولدول.

**زيږول**[2] (ziẓawal) مص. مت. ۱) څيږول، لواړول، د ښوی کول مقابل؛ ۲) کلکول، سختول

**زېږه** (zeẓa) ښځ. م. ميلاد، د زېږېدو وخت.

**زېږېدل**[1] (zeẓedal) مص. ل. پيدا کېدل، زو کېدل

**زيږېدل**[2] (ziẓedal) مص. ل. څيږېدل، ديږېدل، لواړېدل؛ د ښوی کول مقابل.

زېګنال (zegnāl) نر.م. و ګ. سېګنل.
زېل (zēl) نر.م. زيل، هغه پړی يا زنځير چې د بنديانو په غاړه کې اچول کېږي.
زيل (zīl) نر.م. (ج. زيلونه) ډول، قسم، رقم.
زيلان (zilān) نر.م. زېلانځ، رحم، زيلانځه، د ښځې د نس هغه برخه چې اولاد په کې وي.
زيلانځ (zilānj) ا. و ګ : زيلان.
زېلوچه (zelōča) ښځ.م. زيلچه، قالينچه.
زېله (zelā) ښځ.م ۱) نيله، ختی، جړی، ولې، رېښه، جرړه؛ ۲) رشته، د کورنۍ سلسله؛ ۳) جبلغ (جوړنګ) لرونکی نبات.
زېلی (zelāy) ښځ.م. ج. ۱) د ونې رېښه، جرړه؛ ۲) برغتی، کجيران؛ ۳) خزنده، خوځېدونکی؛ ٤) تانګونه، زېلانګې، جلبغونه (د ختکې او... ٥) ښاخونه او وړې څانګې.
زېم (zēm) نو. نم، نمجن والی، رطوبت، لندبل.
زيمته (zimatā) ص. نب. خړ، خجل، ملامت.
زيمته توب (zimatātōb) نر.م. زيمته والی، زيمت توب، خړوالی، خجالت، خړېدنه.
زيمجن (zyamjan) ص. نر.م. ج. نمدار، زېمناکه، نمناکه، زېم لرونکی، مرطوب، زېمن.
زېمکښ (zemkaṣ) ص. نر.م. ج. نوراکشوونکی، نوراکښن کوونکی، نم راښکونکی.
زېمناک (zemnāk) ص. نر.م. ج. و ګ. زېمجن.
زېمنه (zemnā) ښځ.م. ښوروا، شوروا، شوربا.

زېموالی (zemwālay) نر.م. نمجن والی، نمجنتوب.
زين (zin) نر.م. (ج. زينونه) ځين، د لرګي او څرمنې څخه جوړه آله ده چې د انسان د ناستې لپاره د آس په ملا باندې اېښودله کېږي.
زينت (zinat) نر.م. ښکلا، ډول، آرايش.
زينتي (zinati) ص. نب. ډولي، د زينت، د ښکلا، په زينت پورې تړلی.
زيندی (zinday) ښځ.م. و ګ. زندی.
زينک (zink) نر.م. ج. و ګ. جست ۱).
زينګر (zingar) نر.ج. ډله، جمعيت، لويه ډله، ګڼ خلک.
زينګر (zingar) ص. نر.م. ج. ګور، ګڼ، زيات.
زينګی (zingay) نر.م. د غېږو په نيولو کې يو ډول چال دی چې لوبغاړی خپل حريف پر زنګانه او اړخ باندې راپورته کوي او په ځمکه راځملوي.
زينول (zinawal) مص.مت. ځينول، زين کول، په آس زين اېښودل.
زينه (zina) ښځ.م. (ج. زينې) ځينه، پوړۍ، درپايه، درپه، اندرپايه.
زېور (zewar) نر.م. ګاڼه، پسول.
زيوس (ziyūs) نر.م. و ګ. جوپيتر ۲).
زيويت (ziwit) نر.م. ۱) د کاريزه کلکه شوې خته؛ ۲) د مرز هومره د اوبو يو خړه مرغۍ ده.
زيير (zayīr) ص. نب. و ګ. زهير.

# ژ

ژ (ž̌e) ښځ.م. د پښتو الفبې شلم توری دی. د جمل په حساب د ۷ عدد ددې توري نمايندگي کوي.

ژاخ (žāx) نر.م. جاخ، گړ او گورځنگل.

ژاخو (žāxū) ص.نر.م. بې ډوله، بدرنگه، بد څېره.

ژاخه (žāxa) ښځ.م. جاخه، گنې ونې او بوټي.

ژارغالی (žārgālay) نر.م. د کوچيانو موقتي ځای يا استوگنځی.

ژاړ (žāṛ) نر.م. جاړ، جلاب.

ژاړنده (žāṛandā) ص. ښځ. . هغه چينه چې څاڅکي څاڅکي اوبه ترېنه راوځي.

ژاله (žālā) ښځ.م. ۱) د ميرواريو (لندو ماچو غوندې سپين مواد) واورې شيدې؛ ۲) ځاله، منځوله.،

ژامبېل (žāmbēl) نر.م. د ژامې هډوکی.

ژامه (žāma) ښځ.م. و گ. زامه.

ژاميز (žāmiz) ص. د ژامې اړوند، په ژامه ادا کېدونکی اواز (فونيم).

ژانه (žāna) ښځ.م. غوړه مالي، تملق، چاپلوسي.

ژانی (žānay) ص. نر.م. غوړه مال، چاپلوس.

ژاولن (žāwlan) ص. نر.م. ۱) ژاوله لرونکی؛ ۲) هغه څوک چې سمې خبرې نه شي کولای؛ ۳) بې زړه، کم جرأته.

ژاوله (žāwla) ښځ.م. ژووله، زاوله، سيته، يو دول پسته ارتجاعي ماده ده چې يوازې ژوول کېږي.

ژباتلس (žabātlas) ا. ژبنی اتلس، د ژبپوهنې اتلس.

ژب ادب پوهنه (žabādabpōhana) د ژبپوهنې هغه څانگه چې لرغوني ادبي متونه تر څېړنې لاندې نيسي. فقه اللغه.

ژباړون (žbāṛūn) فا. نر.م. ژباړونکی، مترجم.

ژباړه (žbāṛa) ښځ.م. ژباړنه، ترجمه، له يوې ژبې څخه بلې ژبې ته د يوه مطلب يا مضمون اړونه.

ژباړيکي (žabāṛiki) ا. ژبني اړيکي.

**ژب اوښتون** (žabāwūstūn) ا. ژبونې، ژبېدلون.
**ژباوڼ** (žbāwūṇ) ص. نر. م ۱) چاپلوس، غوړه مال؛ ۲) مفتن، دسيسه کار.
**ژببريد** (žabbrīd) ا. ژبنی بريد يا سرحد.
**ژببنديز** (žabbandīz) د لزکيو پر ژبه لګېدلی بنديز.
**ژبپانګه** (žabpānga) ا. ژبنی پانګه يا زېرمه.
**ژبپرتله** (žabpartala) ا. ژبنی پرتله يا مقايسه.
**ژبپرمختيا** (žabpərmaxtyā) د ژبې پرمختيا، ژبنی پرمختيا.
**ژبپوه** (žabpōh) ص. نر. م (ج. ژبپوهان) ژبپوهاند، د ژبې پوه، د ژبې عالم، لېنګويسټ.
**ژبپوهاند** (žabpōhānd) ص. و ګ.: ژبپوه.
**ژبپوهنه** (žabpōhanā) ښځ. م. د ژبې علم، لېنګوېستيکس، زبانشناسي، د ژبې د ماهيت او څرنګوالي د څېړلو پوهنه.
**ژبپوهنيز** (žabpōhanīz) ص. نر. م. ج. لساني، لېنګوېستيک؛ د ژبپوهنې، د ژبې علم.
**ژبپېر** (žabpēr) ژبنی پېر (دوره، عصر).
**ژبپېژاند** (žabpežānd) ا. د ژبپوهنې څېړونکی، ماهر.
**ژبټولنپوهنه** (žabṭōlanpōhanā) ژبنی ټولنپوهنه، د ژبپوهنې هغه څانګه چې په ټولنپوهنه اړه لري.
**ژبټولنه** (žabṭolanā) ا. ژبنی ټولنه، په يوه ژبه غږېدونکی ټولنه.
**ژبځېل** (žabjēl) ژبنی ټايپ (نوع).
**ژبڅټ** (žabcaṭ) ا. ژبشا، د ژبې شا يا څټ.
**ژبڅوکه** (žabcūkā) ا. د ژبې سر يا څوکه.
**ژب څوکيز** (žabcūkiz) ص. نر. م. ج. د ژبې د څوکې، د ژبې په څوکې اړوند.
**ژبڅېړونکی** (žabcerūnkāy) د ژبپوهنې څېړونکی

**ژبڅېړنه** (žabcerana) ا. ژبنی څېړنه.
**ژبخپلوي** (žabxpəlwi) ژبنی خپلوي يا تړاو.
**ژبدود** (žabdōd) ا. د ژبې قاعده، ژبنی قاعده.
**ژبدوېنونه** (žabdōūnā) ا. ژبني قوانين يا قاعدې.
**ژبډله** (žabḍala) ژبنی ډله.
**ژبرغاونه** (žabrağawanā) ا. ژبنی رغونه يا جوړښت.
**ژبزده کړه** (žabzdakṛā) ا. د ژبې زده کړه.
**ژبزده کړی** (žabzdakṛāy) ا. د ژبې زده کوونکی، د ژبې شاګرد.
**ژبساپوهنه** (žabsāpōhanā) ا. ژباروپوهنه، رواني ژبپوهنه؛ ژبنی ساپوهنه.
**ژبسپړنه** (žabspaṛanā) ا. د ژبې سپړنه (تشريح).
**ژبسپما** (žabspamā) ا. ژبنی سپما (اقتصاد).
**ژبشننه** (žabšananā) ژبنی تحليل.
**ژب ښودنه** (žabsōdanā) ښځ. م. د ژبې ښوونه، د ژبې تدريس، ژبه چاته ورښودنه.
**ژبغړاندی** (žabğaṛānday) ص. نـر. م. ۱) هغه ماشوم چې نوی په خبرو راغلی وي؛ ۲) ژبور.
**ژبمنځی** (žabmanzāy) ا. ژبنی منځی (مرکز).
**ژبن** (žabān) ص. نر. م. وعده لرونکی، وعده دار.
**ژبنښه** (žabnaṣā) ا. ژبنی سمبول، ژبني علامه.
**ژبننګېرنه** (žabnangeranā) ا. ژبنی ننګېرنه (احساس).
**ژبنی** (zabanay) ص. د ژبې اړوند، ژبيز.
**ژبنی بڼه** (zabanāybaṇa) ا. ژبڼه، ژبنی جوله، مانا وال ژبنی توک.
**ژبنی جغرافيا** (zabanāyjōğrāfyā) ځمکژبپوهنه، جغرافيايي ژبپوهنه.
**ژبني غړي** (zabānigaṛi) ا. د ژبې غږيز غړي، زېږنده (مولد) غړي.

ژبنی کورنی (žǎbanaykȍranay) ژبکهول، د ژبو کورنی.
ژبنی لږه کی (žǎbanaylaẓakay) ژبنی لږبنت، ژبنی لږواله یا اقلیت.
ژبورتیا (žǎbawartya̅)ا. ژبوروالی، خولورتوب، خبرلوځي.
ژبوږتیا (žǎbwaṛtya̅)ا. ژبنی وړتیا یا قابلیت.
ژبوګړپوهنه (žǎbwagaṛpȍhana̅)ا. د ژبنی او د ګړپوهنې ګډه پوهنه.
ژبون (žǎbu̅n) نر.م ۱) ژبه؛ ۲) وارخطا، بې واره.
ژبونج (žǎbwa̅nj)ا. ژبېدلون، ژب اوښتون، ژبنی ویخون (بدلون).
ژبونکی (žǎbunkay) نـر.م. ۱): کمیس کالـر؛ ۲) د ښځو زردوزي غاړه؛ ۳) د پرتو ګ خښتک.
ژبوهنه (žǎbwahana̅) شمېروهنه، ضرب زباني.
ژبه (žǎba̖) ښځ. م. ۱) زبه، د غوښې هغه ټوټه چې په خوله کې وي؛ ۲) قول، عهد، لوز، ژبه او لوز؛ ۳) لسان، لېنګویج، کلام، وینا، تکلم، نطق.
ژبه ور (žǎba̅war) صن. نـر.م. ۱) په ژبه چـالاک، ژبغـړاند، تېـزژبی؛ ۲) روانـه او فصـیحـه ژبه لرونکی؛ ۳) داوږدې ژبې خاوند، بې لحاظه.
ژبه وهنه (ža̖ba̖wahana̖) ښـځ.م. د ژبې جنګ، شکایت، ګیله.
ژبی (žǎba̅y) ښځ.م ۱) کمکۍ ژبه؛ ۲) د کالیو ترخځ ۳) د کوچنیانو د ستوني یو ډول ناروغي.
ژبیز (žǎbi̅z)ص. ژبنی، د ژبې اړوند.
ژبینکی (žbinka̅y) نـر.م. ژبونکی، خښتګ (د پرتوګ).
ژب یوون (ža̖byawun)ا. ژبنی یوون (واحد).
ژدویل (ždu̅yal) مص. مت. و ګ. ژوول.
ژدوینه (ždu̅yana̅) ښځ.م. شخوند.

ژر (žǎr) ق. زر، چابک، چټک، په بیړه، په تراټ.
ژرباوری (žǎrba̅wara̅y) ص. ژرساور، (یقین) کوونکی، ساده.
ژرباوري (žǎrba̅wari̅)ا. ژرباورونه، ساده ګي.
ژرپرغزی (žǎrparǧazay)ص. ژرغوسه کېدونکی، ژر قهرېدونکی، ګرم مزاج.
ژرپوخی (žǎrpoxay) ص. ژر پخېدونکی، ژررسی (مېوه، خوراکي څیزونه).
ژرپوهی (žǎrpȍhay)ص. ژرپوهېدونکی، تېز ذهني.
ژر تر ژره (žǎrtaržǎra̅) ق. بې له ځنډه، په چټکتیا په بیړه، په چابکۍ.
ژرځوابی (žǎrǰawa̖ba̖y)ص. حاضر ځواب، لنډ ځواب.
ژرخطوه (žǎrxatwa̅) د عسکري یوه قومانده ده چې د تګ د سرعت د تغییر لپاره ورکول کېږي.
ژررسی (žǎrrasay)ص. و ګ. ژرپوخی.
ژرسهی (žǎrsahay)ص. ژرهضم، نرم (خواړه).
ژرګه (žǎrga̖) ښځ.م. یو ډول اغزن بوټی دی.
ژرمـوندی (žǎrmu̅nday)ا. ژر ترلاسېدونکی، ژرموندنه، اسان موندی.
ژرلګ (žǎrlag) نـر.م. ژرګلېر، ژرلکه، کاږخار، یو ډول سپېره اغزن بوټی دی.
ژرنده (žǎranda̖) ښځ.م. د اوړو کولو آله یا دستګاه چې په اوبو، بربېښنا، باد، تېلو ګرځي.
ژرنده ګړی (žǎranda̖garay) ص. نـر.م. ژرنده چلوونکی، د ژرندې چلولو دنده.
ژرندی (žǎranda̅y) نر.م. د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.
ژرندې غابښ (žǎrandeǧa̅s) نر.م. ژرندنی غـابښ، غټ غابښ د خولې په اخرنۍ برخه غابښونه.
ژرنګ (žǎrang) نر.م. شرنګ-د ګونګریو شرنګا.

**ژرنګانی** (žrangānay) نر.م. جرنګانی، ګونګری، د ماشومانو د لوبو آله ده.

**ژرنګهار** (žrangahār) نر.م. د ژرنګ ژرنګ پر له پسې اواز.

**ژرنګېدل** (žrangēdal) مص. ل. و ګ. شرنګېدل.

**ژروالی** (žarwālay) نر.م. تلوار، بېړه، چالاکي، سرعت، چټکتیا، شتاب.

**ژرهځی** (žarhacay) ص. ژراقدامی، ژربرېدی.

**ژړی** (žaṛəy) ښځ.م. ۱) د اوښې تنې ته نیږدې زړه ګونډه (توتکی)؛ ۲) ژرګه.

**ژړ** (žaṛ) ص. نر.م. ج. ۱) زېړه برنج، براس، برونز، یو ډول فلز دی؛ ۲) ژېړ رنګ، ژېړ؛ ۳) صفرا.

**ژړا** (žaṛā) ښځ.م. اوښکې تویونه، د روحي تأثراتو یو عکس العمل دی چې د اوښکو د راڅڅېدو په توګه څرګندېږي.

**ژړاند** (žaṛānd) ص. نر.م. ج. ژړان، ژړېدونکی، ژړندوکی.

**ژړانکه** (žaṛānkā) ښځ.م. و ګ. ژېړانکه.

**ژړانوک** (žaṛānūk) ص. نر.م. ژړندوک، هغه ماشوم چې ډېر ژاړي، ژړغو.

**ژړبخون** (žaṛbaxwan) ص. نر.م. و ګ. ژېړبخن.

**ژړرنګی** (žaṛrangay) ص. نر.م. ژړرنګه، زېړ رنګه، د ژړ، هغه چې ژېړ رنګ لري.

**ژړغوري** (žaṛğwaṛi) جن. د مېږو غوړي، کوچ چې وېلې شي ژړغوري لاس ته راځي.

**ژړغونی** (žaṛağūnay) ص. نر.م ۱) ژړ ته نیږدې، ژړا ته مایل؛ ۲) زېړ رنګی، وارخطا، ژړه غونی.

**ژړل** (žaṛəl) مص.ل. زړل، له سترګو اوښکې تویول.

**ژړندوک** (žaṛandūk) ص. نر.م. و ګ. ژړاند.

**ژړوالی** (žaṛwālay) نر.م. ژېړ توب، ژېړ رنګ، زېړوالی، ژېړوالی.

**ژړوزمه** (žaṛwazmā) ص. نب. ژړغوندې، ژړ ته مایل، ژړوشمه، ژړبخون.

**ژړول** (žaṛawəl) مص. مت. په ژړا راوستل، د روحي تأثر په اثر سترګو څخه اوښکې تویول.

**ژړی** (žaṛay) نر.م. زېړی، د زېړې ناروغي، یرقان، ژېړی، یوه ناروغي ده چې د ینې د ناجوړتیا او دهضم د کار د اختلال څخه پیدا کېږي.

**ژړی** (žaṛəy) ښځ.م ۱) و ګ. پېړیان اویه؛ ۲) جړی، پرله پسې باران؛ ۳) قی، کانګې؛ ٤) یو ډول بوټی دی چې د سارچیچلې د دوا ده؛ ٥) و ګ. ژړانکه؛ ٦) د ژړ مصغر.

**ژړی تبه** (žaṛəytabā) ښځ.م. د ملاریا تبه، نوبتي تبه، سړه لرې تبه، بېړ نوونکې تبه.

**ژړېدل** (žaṛedal) مص. ل. ۱) په ژړا کېدل، ژړل؛ ۲) زېړ رنګ اخیستل؛ ۳) شرمېدل؛ ٤) مړاوې کېدل، جینګړېدل.

**ژږګی** (žažgay) نر.م. جیږګی، جڅګی، شیژګی.

**ژست** (žist) نر.م. اشاره، نمایشي خبره یا چاره.

**ژغ** (žağ) نر.م. ۱) جغ. یغ، د یېوې د آلې هغه برخه چې د غوایانو په څټ باندې ایښودل کېږي؛ ۲) د ختیو د یوم یوه پره.

**ژغا** (žağā) ښځ.م. غرنجا، د بوټو او شپلیو چغا، د شپلیو او بوټونو غرنجا.

**ژغځی** (žağcay) ښځ.م. ج. د ښښتر د ونې پاڼه چې ستنې غونډې تېرې وي.

**ژغرۍ** (žğarəy) ښځ.م. وتنه، پروا، عمل، فکر.

**ژغروی** (žğarway) ص. نر.م. ژغوری، ساتندوی، ساتونکی، ژغورونکی، حفیظ.

**ژغروي** (žğarwi) ښځ.م. ساتنه، ژغورنه.

**ژغړی** (žğaṛay) نر.م. یو ډول بوټی دی چې د جوارو په کښت کې زرغونېږي.

ژغندکی (žğandakày) ښځ.م. د توپک ښه، د توپک هغه برخه چې باندې ښه نیسي.

ژغنډ (žğanḍ) نر.م. جغنډ، ژوغنډ، په ونه او لرګي کې د تبر په واسطه پرې شوې جرې.

ژغنډکی (žğanḍakày) نر.م. د ژغند تصغیر.

ژغنډه (žğanḍa) ښځ.م. ژوره ویاله، ژغوره ویاله.

ژغور (žğor) نر.م. ۱) پناه، نجات، ساتنه، ژغورنه (د ژغورل د فعل بنسټ)؛ ۲) غار، سوری.

ژغوراند (žğoránd) ص. ژغورونکی، ژغورند، ژغورندوی.

ژغوربېړی (žğorberày) ا. د ژغورنې بېړی، د نجات بېړی.

ژغورتیایي (žğortyàyi) ص. دژغور یا ژغورتیا اړوند.

ژغورچاري (žğorčare) ص. د ژغورنې چارې، ژغورتیایي چارې.

ژغورځای (žğorǰay) نر.م. پتله، د ژغورنې ځای، پناه ګا، د ساتنې ځای، ژغورځی.

ژغورځی (žğorǰay) ا. و.ګ.: ژغورځای.

ژغورډله (žğorḍala) ا. د ژغورنې ډله، د نجات ټیم.

ژغورګاډی (žğorgaḍay) ا. د ژغورنې ګاډی، امبولانس.

ژغورل (žğoral) مص. مت. ساتل، بچول، بچ کول، حمایه کول، خلاصول.

ژغورن (žğoran) ص. نر.م نجات ورکوونکی.

ژغورنګر (žğorangar) ا. د ژغورنې لپاره لنګر (اچول).

ژغورنده غورځنګ (žğorandağorǰang) ا. ازادیپال غورځنګ یا نهضت.

ژغوروزله (žğorwazla) ا. د ژغورنې وسیله.

ژغوری (žğoray) فا. نر.م. ساتندوی، ژغروی، ساتونکی، ژغورونکی، حافظ.

ژغونډی (žğonḍay) نر.م. ژغنډی، جوغلنډی، یو لرګی دی چې جغ یا ژغ ته وراچول کېږي.

ژغهار (žağahàr) نر.م. ج. شغهار، دنوو بوتو، شپلیو، موچنو... غنج غنج او اواز.

ژغی (žağay) نر.م. تذکره، هغه زمبېل چې د جنګ زخمیان یا ناروغان په کې وړل کېږي.

ژګه (žgà) ښځ.م ۱) نکاح ښکولې، نکاح شوې ښځه ۲) و.ګ. جګه.

ژلی (žalày) ښځ.م.ج. ږږی، ږلی، د اورې کوچنی څپرکی.

ژمګنی (žamganay) ص. نر.م. ژمنی، د ژمي، ژنګوره.

ژمګوری (žamgōray) نر.م. ژمنی ځای، ژمنی استوګنځی، ژمګوره.

ژمن (žmən) ص. وعده دار، بازوال، ذمه دار، تضمینوونکی.

ژمنتیا (žmanatya) ا. ژمنتوب، ژمنواله، ژمنه، تعهد.

ژمنلیک (žmanalik) ا. ضمانت لیک.

ژمنماتی (žmanamātay) ص. بې لوزه، لوز ماتوونکی.

ژمنه (žmanà) ښځ.م ۱) وخت، نېټه؛ ۲) ژبنه، لوز، قول، ژبه، عهد او پیمان.

ژمنه ځای (žmanaǰày) ا. ژمنځای، دوعدې ځای.

ژمنی (žamanày) ص. نر.م. زمنی، دژمي، ژمګنی.

ژمی (žamày) نر.م. د یخنۍ موسم، د لمریز کال څلورم فصل.

ژمیا (žamyà) ښځ.م. نر. یو ډول تریخ او تند واښه دي چې سپین ګل کوي.

**ژندره** (žandrā) ښځ.م. ۱) د نالیو او تشو کارتوسو د درستولو او ډکولو قالب؛ ۲) کولپ، قفل.

**ژندره ساز** (žandrasāz) ص. کولپ جوړوونکی، کولپ ساز.

**ژندری** (žandray) ښځ.م. جندري، سیم کش، د زرگرانو د کار یوه آله ده.

**ژنگ** (žang) ص. نر.م. مراوی، جینگړ، شیته.

**ژنگوری** (žangōray) نر.م. د انگورو وړی، گونگوری، ډنډوری، وانبکی، د انگور خوشه.

**ژنل** (žnal) مص. مت. منبل، شاربل، زگول.

**ژڼکی** (žaṇkay) نر.م. زنکی، ځلموټی، نوی ژنی شوی هلک.

**ژڼی** (žaṇay) نر.م. زلمی، ځلمی، ځوان ژنی، نوی رسېدلی ځوان.

**ژڼۍ** (žaṇay) ښځ.م. د پسه د کولمې څخه جوړ شوي تارچې د رباب او... لپاره استعمالېږي.

**ژڼي توب** (žaṇitōb) نر.م. ځوان توب، ځواني، ځلمیتوب.

**ژواک** (žwāk) نر.م. ژوند، ژوندون، زواک.

**ژوبل** (žōbal) ص. نر.م. ج. زخمي، وهلی نتلی، ټپي، مجروح.

**ژوبلل** (žōblal) مص. مت. ۱) ژوبلول، زخمي کول؛ ټپي کول؛ ۲خج بج کول.

**ژوبلور** (žōblawar) ص. جنگیال، جنگیالی، سرتېری.

**ژوبلوری** (žōblawaray) نر.م ۱) عسکر، سرتېری، سربښندونکی.

**ژوبلول** (žōblawal) مص. مت. ۱) زخمي کول، زوبلول، خوږول؛ ۲) خت پت کول، خج بج کول.

**ژوبله** (žōblā) ښځ.م. ۱) زخمي توب، ټپي توب؛ ۲) جگړه؛ ۳) مرگ، وژنه؛ ۳) ببرې ځانگې.

**ژوبلېدل** (žōbledal) مص.ل. خوږېدل، زخمي کېدل، زوبلېدل، ټپي کېدل، غوڅېدل.

**ژوبنه** (žōbnā) ښځ.م. یوه ول کند دی چې که په تیږه باندې کېښودل شي او په بله تیږه ووهل شي نو انفلاق کوي.

**ژوبڼ** (žōbaṇ) نر.م. زو، زوپارک، هغه بڼ چې په هغه کې د ژوو بېل بېل ډولونه د ننداري لپاره ساتل کېږي.

**ژوپوهنه** (žōpōhanā) ا. د ژویو (حیواناتو) علم، ځناور پېژندنه.

**ژور** (žawar) ص. نر.م.ج. ډونگی، عمیق، د رگ (رغي) ضد.

**ژوراندی** (žawarānday) ژورفکری، دوراندېش.

**ژورغاښی** (žawarğāṣay) نر.م. د آس توبره، د اس د وربشو لوښی.

**ژورغالی** (žawarğālay) نر.م. غوږومبی، کند غالي، گوری، لږ څه کښېندل شوې ځمکه.

**ژورلېنگی** (žawārlengay) نر.م. د توتکي ژور ځای، دزنگانه تر ستر گې لاندې ژور ځای.

**ژورمېچ** (žawarmeč) نر.م. اسقندیل، هغه آله چې ژوروالی وریاندې اندازه کېږي.

**ژورنال** (žōrnāl) نر.م ۱) ورځپانه؛ ۲) مجله، جریده؛ ۳) دورځنیو پېښو اندراج؛ ٤) د ورځپاڼې دفتر ۵) مج. د یوه کمیټې... دمعاملو اندراج.

**ژورنالیزم** (žōrnālizam) نر.م. ورځپانه لیکنه؛ دورځپانې یانورو موقوته (نوبتي) خپرونو لپاره د خبرونو ټولونه، لیکنه، ادیټ او لاربښونه.

**ژورنالیسټ** (žōrnālisṭ) نر.م. ۱) هغه څوک چې مسلک یې ژورنالیزم وي؛ د یوې ورځپانې یا نورو موقوته خپرونو راپورتر؛ ۲) هغه څوک چې د ورځنیو پېښو اندراج د ځان سره ساتي.

ژوروالی (žawarwālay) نر.م. ژورتوب، ژورتیا، عمق.

ژورول (žawarawal) مص. مت. کښندل، عمیقول، ژوغرول، ژغورول، جورول.

ژوروین (žawarwin) ص. ژورلیدی، څیرک.

ژوره (žawarā) ښځ.م ۱) ژرې، جوره، جوک، زوله، یو ډول چینجی دی چې په اوبو یا نمجنو ځایو کې اوسي او وینه څښښي؛ ۲) ښکته، لوېدلې او کنده ځمکه؛ ۳) د ژور مؤنث.

ژوري (žōri) نر.م. منصفه هیئت، حاکمه هیئت، ممتحنه هیئت.

ژورېدل (žawarēdal) مص.ل. زورېدل، کښندل کېدل، ژغورېدل، عمیقېدل.

ژول (žawal) مص. ل. ژوندی اوسېدل، ژوندی پاتې کېدل.

ژوند (žwand) نر.م. حیات، زندګي، د مرګ ضد؛ ۱) بیا. وګ. حیات.

ژوندبخره (žwandbaxrā) ا. د ژوند حق.

ژوندپوهاند (žwandpōhānd) ا. ژوند پوه، د ژوند پوهنې (بیولوجي) ماهر.

ژوندپوهنه (žwandpōhanā) ژوند پوهه، بیولوجي.

ژوندپېښې (žwandpeṣe) ا. د خپل ځان دژوند پېښې، ځانپېښې.

ژوندتوګه (žwandtōga) ا. ژوند ډول، ژوند و ژواک.

ژوندجګړه (žwandjagṛā) ښځ.م. وګ. تنازع للبقاء.

ژوندچاپېریال (žwandčāperyāl) ا. ژوندنی چاپېریال، محیط زیست.

ژوندکچه (žwandkačā) ا. د ژوند سطحه، د ژوند تېرولو څرنګتیا او معیار.

ژوندون (žwandūn) نر.م. ۱) وګ. ژوند، ۲) یوه مجله ده چې د کابل څخه خپرېږي او د ۱۳۲۷ ش کال د وري په میاشت کې تاسیس شوې ده.

ژوندون اوبه (žwandūn ōba) ښځ.م. د ژوند اوبه، آب حیات، ژوندوبه.

ژوندی (žwanday) ص. نر.م. بیا. هغه شی چې د خارجي او داخلي تنبیهاتو په وړاندې د تایید یا تردید ځواب ورکوي یا احساس، تفکر او عمل لري.

ژوندی خورده (žwandayxūrdā) ښځ.م. هغه چینجی چې د جذامي له پزې رالوېدلی وي.

ژوندی رشک (žwandayrašk) نر.م. لوند درب؛ درب یو ډول جلدي ورجنه او ساري ناروغي ده.

ژوندی ژبه (žwandayžabā) ا. د یوه هېواد یا ولس د ورځنی چال چلند ژبه.

ژوندی مری (žwandaymaray) ښځ.م. یو ډول ښوی مری ده.

ژوندینکه (žwandinakā) ا. وګ. ژونکه.

ژونکه (žwanaka) ا. حجره، کوره کی، سل.

ژوول (žawal) مص. مت. زوول، ژبیل، ژویل، جویل په غاښو پستول او میده کول.

ژووني (žowūnay) نر.م. ۱) یوه ژویونې ژاوله؛ د ژوولو یوه ټاکلې اندازه؛ ۲) د ژوولو شی.

ژوه (žawā) ف. ژوندی اوسې، ژوندی دې وي.

ژوی (žaway) ص. نر.م. ۱) ژوندی، د سېلوې ښبنتن، د ساخاوند؛ ۲) حیوان، ساکښ.

ژوي (žawi) نر.ج. ۱) ساکښان، ژوندي، د سېلوې ښبنتنان؛ ۲) حیوانات، ځناوران، څاروي؛ ۳) ژوند کول.

ژویال (žōyāl) ا. د ژویو (ساکښو) یو پر بل اړوند نظام، ژوند چاپېریال.

ژی (žay) نر.م. زی، د اوبو مشک.
ژې (že) ښځ.م. د «ژ» توري اواز او تلفظ.
ژۍ (žәy) ښځ.م.ج. ۱) غاړه، کناره، پیڅه، څنډه؛ ۲) د لیندۍ ژۍ.
ژیرونی (zerūnay) نر.م. یو بوټی دی چې سرې بخنې پانې لري.
ژیره (žyәrā) ښځ.م. یو بوټی دی چې ښخ یې لکه د کچالو او رنګ یې تور وي.
ژېړ (žer) ص. نر.م.ج. و.ګ. ژړ.
ژېړانکه (žerānaka) ښځ.م. ژړانکه، ژېړانه، ژېړی، دهقانکه، یو ډول زېړه مرغۍ ده.
ژېړبخن (žerbaxan) ص.نر.م. زېړ رنګ ته مایل، ژړوشمه، ژېړ وزمه، ژېړ شانته، ژېړغوندې.
ژېړسرې (žersare) ښځ.م. یو ډول ژېړانګه ده چې سر یې ژېړ او نور بدن یې ابي دی.

ژېړکځ (žerkac) نر.م. یو ډول تیږه ده چې مردکې (مردکه، توشله) ور څخه جوړېږي.
ژېړګلی (žergwalay) نر.م. یو ډول بوټی دی.
ژېړوالی (žerwālay) نر.م. ژېړتوب، ژړنیا.
ژېړول (žerawal) مص. مت. ۱) زېړول، ژړول، زېړ رنګ ور کول؛ ۲) شرمول، خجالت ور کول.
ژېړی (žeray) نر.م. و.ګ. ژړی.
ژېړی تبه (žeraytaba) ښځ.م. و.ګ. ژړی تبه.
ژېړېدل (žeredal) مص ل. ۱) زېړېدل، زېړ رنګ اخیستل؛ ۲) شرمنده کېدل؛ ۳) مړاوی کېدل.
ژېړین (žerin) ص. نر.م. د زېړو، د ژړو، د زېړو، د زېړو څخه جوړ شوی، برنجي (شی، لوښی).
ژیګلو (žiglō) نر.م. (ج. ژیګلوګان) ژیګولو، د ژیګولیت مذکر، هغه څوک چې ځان په غربي موډونو سینګاروي.

# ږ

**ږ** (ẓe) ښځ. م. د پښتو الفبې یوویشتم توری دی. ابجدي ارزښت یې (۷) دی.

**ږبن** (ẓabə́n) ص. نر. م. وعده لرونکی، ژمنه لرونکی.

**ږدل** (ẓdəl) مص. مت. اېښودل، اېښوول، کېښودل، کښېښول، اېږدل، کېښول.

**ږدن** (ẓdən) نر. م. ج. اېږدن، غوښت، گدن. د گرامیني غله جاتو له کورنۍ څخه دی چې د څارویو او مرغانو د خوراک لپاره کار ورڅخه اخلي.

**ږری** (ẓaráy) ښځ. م. و گ. ژری.

**ږرینگري** (ẓaringarí) نر. ج. ږله گرکی، گرېگري، د واورې او ږلۍ ډېر واړه او نرم گاټي.

**ږږ** (ẓaẓ) نرم. د سکروتوه او خاکه.

**ږغ** (ẓağ) نر. م. غږ، اواز، صوت، هغه څه چې اورېدل کېږي.

**ږغانځه** (ẓğā́nja) ښځ. م. ږروه، ورگه، کیکه، وروښې.

**ږغبندی** (ẓağbandáy) نر. م. ژوغندی، هغه لرگی چې د ژغ په لاندې باندې سوریو کې د غوایانو د سرونو د ایسارولو لپاره ورکول کېږي.

**ږغپوهنه** (ẓağpohə́na) ا. غږپوهنه.

**ږغرتیا** (ẓğartyā́) نر. م. ۱) منښت؛ ۲) زېرمه، ساتنه.

**ږغرل** (ẓğarə́l) مص. ل. د زړه په غوږو اورېدل، د زړه له کومې اورېدل.

**ږغرول** (ẓğarawə́l) مص. مت. ساتل، خوندي کول.

**ږغری** (ẓğaráy) نر. م. دغاښو چونه، د غاښو لیک، پته، ژغره، خنگره.

**ږغري** (ẓğarí) ښځ. م ۱) ساتنه، حفاظت؛ ۲) قبولي، منښت.

**ږغږغه** (ẓağẓağā́) ښځ. م. گونگری، زنگوله.

**ږغږغی** (ẓağẓağáy) ښځ. م. ۱) د غنمو د دانې پوښ؛ ۲) د غز پانه؛ ۳) گرېگرکی، ږرینگري.

**ږغږغری** (ẓagẓagaray) نر.م. و گ. ږله گرگی.

**ږغل** (ẓgal) نر.م. د یخ جغله یا توټه، د شګو او کاڼو جغله، د کاڼو او تیږو ژغل.

**ږغن** (ẓağan) ص. نـر.م. ۱) بد غږ وهلی، په بلا اخته، ږغ لرونکی (صدا دار).

**ږغوږوغ** (ẓağuẓuğ) نر.ج. غالمغال، شورماشور.

**ږغول** (ẓağawal) مص. مت. ۱) غږول، وهل (لکه د موسیقی آلات)؛ ۲) په خبرو راوستل، ګړول.

**ږغېدل** (ẓağedal) مـص. ل. ۱) ګـړېدل، په خبرو راتلل؛ ۲) ږغول کېدل؛ وهل کېدل، ترنګېدل.

**ږغیز** (ẓağiz) ص. نر.م. غږوالا، ږغ لرونکی، د غږ.

**ږغیزمزي** (ẓağizmazi) نر.ج. د ږغ مزي، د غږ تارونه، ووکل کوردز.

**ږغیزه الفبا** (ẓağizaálefbā) ا. ږغیزه ابېڅې.

**ږغلوه** (ẓgelwā) ښځ.م. لږ استحقاق، کمه دعوا، ناحقه دعوی.

**ږله گرکی** (ẓalagarkày) نر.م. گـریگرکی، دوا وړې گریگرکی، گله گرکی، ږغږغری.

**ږلۍ** (ẓalay) ښځ.م. ژلۍ، ږیږۍ (و گ. ژلۍ).

**ږلۍ څپلی** (ẓalayjapalày) ص. ږلۍ وهلی.

**ږمنځ** (ẓmanj) ښځ.م. ږمونځ، یوه غابنې لرونکې آله ده چې د سر ویښتان پرې شانه کوي.

**ږمنځول** (ẓmanjawal) مص. مت. گمنځول.

**ږمنځی** (ẓmanjay) نـر.م. یوه وړه گمنځ ده چې یوازې یوې خواته غابنونه لري.

**ږمنځۍ** (ẓmanjay) ښځ.م. دجولا گمنځ، د دوړانو گمنځ، د اوبدلو گمنځ، رچ.

**ږمنځېدل** (ẓmanjēdal) مص. ل. گمنځېدل.

**ږنگ** (ẓang) نر.م. زنګوله، زنګ، ګینګړی.

**ږنگوری** (ẓangūray) نـر.م. وابښکی، ږنوړی، وښکالی، د انگورو وښکالی یا گانی.

**ږو** (ẓō) اد. سوګند، قسم، ګو، قسمیه کلیمه ده.

**ږوږ** (ẓwaẓ) نر.م. ځوږ، غوربې، شور و غوغا.

**ږوغ ږغ** (ẓūğẓağ) نر.م. آواز، شور، ږغ و ږوغ.

**ږومنځی** (ẓūmanjay) نر.م. یو ډول سارانی بوټی دی.

**ږوی** (ẓaway) نر.م. شاهد، ګواه، لووی.

**ږې** (ẓe) ا. د پښتو ابېڅې اوولسم توری تلفظ.

**ږۍ** (ẓay) ښځ.م. مـونجه، سنۍ، هغې سنۍ چې د جوالونو خولې وریاندې ګنډلې کېږي.

**ږیرخرېیلی** (ẓirxreyalay) ص.نر.م ۱) ژیر خریلی؛ ۲) شرمېدلی؛ د ناموس په شرم ککړ شوی.

**ږیرور** (ẓirawər) ص. نـر.م. ج. د ږیږې خاوند، په ږیره، څوک چې ږیره ولري.

**ږیره** (ẓirā) ښځ.م. هغه ویښتان چې د ځوانی له وخته د نارینه پرمخ راشنه کېږي.

**ږیری**[1] (ẓiray) نـر.م. ځنګل، د ځنګلې بند، د ځنګلې سر.

**ږیری**[2] (ẓiray) ښځ.م. پم، پرده، د جـوارو د غوټې نازکه پرده چې د دانې مخ یې پوښلی وي.

# س

س (sin) نر.م. د پښتو الفبې دوه ويشتم توری دی چې ابجدي ارزښت يې ۶۰ دی.

سا (sá) ښځ.م. ۱) نفس، دم، روح، اروا، سېلوې؛ ۲) هوا، باد؛ ۳) يوې تورې مرغۍ دی؛ ۵) نر.م. (مو.) په اوو ګونو سرو کې د لومړنی سر نوم.

ساچول (sàacăwal) مص. مت. دمه کول، هوسا کېدل، ارامېدل.

ساخيستنه (sàáxistana) ا. سا راکښنه.

ساوبه (saàòba) ښځ.م. آب و هوا.

سابات (sàbāt) نر.م. څېره، دالېز، دهلېز، دالان، کوټخه، سبوت.

سابق (sàbiq) ص. نر.م. پخوا، مخکې، مخکنی، څندن.

سابقه (sàbiqa) ص. نب. ۱) پخوانی، مخکنی؛ ۲) تجربه، د ستاژ دوره، د تېر کار موده؛ ۳) مختاړی، پريفکس.

سابندي (sàbandi) ښځ.م. سالنډی، سياره، نفس تنګی. يو ډول صدري ناروغي ده.

سابندی (sàbanday) ص. نر.م. په سالنډۍ اخته، سياره لرونکی انسان.

سابنی (sabanay) ص. نر.م. سابه والا، سابه خرڅوونکی، ترکاري خرڅوونکی.

سابنۍ (sàbanay) ښځ.م. بنې، پېښ بنې، پوړ، هغه آله چې پېښ سکاره، ورباندې تازه کوي.

سابو (sàbū) نر.م. ۱) ميزری، مزری، يو راز بوټی دی چې له پاڼو يې توکرۍ، پوزي ...جوړوي.

سابودانه (sàbūdāna) ښځ.م. ساګودانه، يو ډول محلي درمل دی.

سابونک (sàbūnak) نر.م. يو ډول بوټی دی، په دغه بوټي کوچيان جامې ورباندې مينځي.

سابه (sāba) نر.ج. ساګ، ترکاري، سبزيجات.

سابه پلور (sàbaplōr) سابه پلوروونکی، سابې.

**سابهير** (sàbahir) ا. د سا يا هوا بهير، جريان.

**سابېړی** (sàberay) ښځ.م. الوتکه، طياره.

**سابی** (sàbay) ا. سابه پلور، سابه پلورونکی.

**سابي** (sàbi) نر.ج. سايبي، يو ډول سره او ډېره خواږه انگور دي.

**ساپټ** (sàpaṭ) ص. نر.م. بالکل، ببخي، سوچ.

**ساپوهاند** (sàpòhãnd) ص. ساپوه، اروا پوه، د روحياتو ماهر.

**ساپوهنه** (sàpòhanà) ا. اروا پوهنه، روانشناسي.

**ساپېدل** (sàpedal) مص. ل. صافېدل، پاکېدل، خالص کېدل، سوچه کېدل، چاڼ کېدل.

**سات** (sàt) نر.م. بلنه، ست.

**ساتل** (sàtal) مص. مت. بچول، حفظول، حفاظت کول، په ځای کول.

**ساتندوی** (sàtandòy) فا. نر.م. ساتونکی، حامي، محافظ، سوتونکی.

**ساتنمل** (sàtanmal) ا. د پوليس ټيټه رتبه.

**ساتنمن** (sàtanman) تر ساتنمل پورته د پوليس رتبه.

**ساتنه** (sàtana) ښځ.م. حفاظت، بچونه، ساتنگ، ژغورنه، په امن کې راوستنه.

**ساتول** (sàtùl) نر.م. ساطور، توکيا، هډکپ، د غوښه او هډوکي ماتولو فلزي آله ده.

**ساتونکی** (sàtùnkay) فا. نر.م. محافظ، حامي، ژغورونکی، ساتندوي.

**ساټباټ** (sàṭbàṭ) نر.م. ج. ۱) غوره، سامانه؛ ۲) سينگار، ښکلا، ډول؛ ۳) يو ډول توکر دی.

**ساټين** (sàṭin) نر.م. ساټن، د اطلس توکر.

**ساچ** (sàč) نر.م. سارکه، سېرکه، سېره، سراچه، اره تکه، يو ډول توره او سپينه مرغۍ ده.

**ساچمه** (sàčma) ښځ.م. چره، چرې، وړه سربي دانه ده چې په بادي ټوپک کې ويشتله کېږي.

**ساحر** (sàhir) فا. نر.م. جادوگر، کوډگر، سحرگر، پاړو، پاړوگر.

**ساحل** (sàhil) نر.م. پتنۍ، د سين غاړه، سيند څنډه.

**ساحلي** (sàhili) ص. نب. د ساحل، په ساحل اړوند، د پتنۍ، د بحر يا بحيرې د وچې غاړې.

**ساحه** (sàha) ښځ.م. ناحيه، سيمه، منطقه.

**ساخت** (sàxt) نر.م. ۱) ص. نر.م. جوړ شوی، روغ شوی؛ ۲) نر.م. جوړونه، رغونه؛ ۳) پخه او رنگ شوی څرمن؛ ٤) يو ډول بيزو، بېزوگی.

**ساختگي** (sàxtagi) ص. نب. غيرطبيعي، غير اصلي، جوړه شوې، جعلي، قلابي.

**ساختلی** (sàxatəlay) ص. نر.م. ۱) مړی، بې سا، مړ؛ ۲) مج. اريان دريان، غمجن.

**ساختمان** (sàxtumàn) نر.م. ۱) جوړښت، رغښت ۲) جوړاب، اړاو؛ ۳) ودانۍ، تعمير، ابادي.

**ساختماني** (sàxtumàni) ص. نب. د جوړښت، د عمارت، د ودانۍ.

**ساخته کار** (sàxtakàr) نر.م. ۱) جعلکار، تقلب کار؛ ۲) غولوونکی، دوکه مار، چمباز.

**ساخولی** (sàxùlay) ص. نر.م. نرم، حليم، بردبار.

**ساخه** (sàxa) ښځ.م ۱) هيبت ناکه چيغه؛ ۲) آفت.

**ساد** (sàd) ص. نر.م. ج. ۱) پاک، ستره، سپېڅلی، روغ، ايمانداره؛ ۲) د غله ضد-

**سادات** (sàdàt) نر.ج. ۱) سيدان، د سيد د کليمې جمع؛ ۲) ښاغلي؛ ۳) لويان. ا

**سادرملنه** (sàdarmalana) ا. رواني يا سايېز علاج.

**سادره** (sàdra) ښځ.م. (مو.) سادده، هغه درېټ چې په جېتال سره ويل کېږي.

**سادگي** (sàdagi) ښځ.م. ۱) د پېچلتوب مقابل، بسيط والی؛ ۲) آساني، سهولت؛ ۳) بې تکلفي ۳) مج. بېعقلي، حماقت؛ ٤) اخلاص، خلوص.

سادو (sādū) ص. نر.م. ۱) چالاک، چمباز، چلباز؛ ۲) مداح، ستایونکی؛ ۳) گندکپ، کیسه بُر.
ساده (sāda) ص. نب. ۱) د پېچلي مقابل، بسیط، اسان؛ ۲) سپین زړی، اخلاصمند؛ بې تکلفه؛ ۵) مج. احمق، بېعقل؛ ۶) لغړزنی.
ساده بډانګ (sādabadāng) ص. نر.م. ناپوه، بېعقل، لوده، احمق.
ساده دل (sādadil) ص.نر.م ۱) رښتینی، بې ریا؛ ۲) مج. کم عقله، احمق، بېعقل.
ساده لوح (sādalawh) ص.نر.م. و ګ. ساده دل.
سادین (sādin) نر.م. شودیاره ځمکه، شدیاره ځمکه، کرچ شوې او یوې شوې ځمکه.
ساډنګ (sāḍang) ص. نر.م. ۱) احمق، بېعقل؛ ۲) مج. بېخونده، بېکاره.
ساډو (sāḍu) ص. نر.م. (ج. ساډوان) ډزن، لاپو.
ساډوب (sāḍūb) ص.نر.م. ۱) خراب، خواشینی، خوابدی؛ ۲) هغه ځای چې زړه په کې تنګېږي.
ساډومازوخیزم (sāḍomāzoxizam) نر.م. (رو.) هغه جنسي خوند چې د خپل نفس یا د بل چا د آزارولو له لارې حاصلېږي.
ساډه (sāḍa) ښځ.م. لاپه، باټه، لافه، دروغ خبره.
ساډی (sāḍay) ص. نب. ۱) سوډی، بېعقله، لټه؛ ۲) ډېر ساده او غیر فعاله سړی.
ساډیزم (sāḍizam) نر.م. ۱) روحاً یا جسماً څوک په عذابول؛ ۲) هغه شهواني ارضا، چې د بې رحمۍ سره مله وي.
سار (sār) نر.م. ۱) زېری، زوری؛ ۲) ساری.
سارا (sāra) ښځ.م. دښت، بېدیا، بیابان، سارا، صحرا.
ساراشین (sārāšin) ص.نر.م. ج. سارایي، د سارا اوسېدونکی، مالدار، کوچی.

سارا ګښت (sārāgašt) نر.م. اودس ماتی، قضای حاجت، متیازې کول.
سارايي (sārāyi) ص. نب. صحرايي، سارانی، بېدیانی، اطرافي.
سارايي چرګ (sārāyičarg) نر.م. غرنی چرګ، یو ډول سور رنګی چرګ دی.
سارق (sāriq) نر.م. غل، شوکماړ، داړه مار.
سارک (sārak) نر.م. ۱) د هګۍ سر؛ ۲) کلک، ټینګ.
سارکه (sāraka) ښځ.م. و ګ. ساچ.
سارمکۍ (sārmakay) ښځ.م. شامکۍ، سارمه؛ یو ډول تریو خونده سابه دي
سارنده (sārinda) ښځ.م. و ګ. سرنده.
سارنګ (sārang) نر.م. ۱) د سمیشور د مکتب مطابق، نټ نارایـن راګ یوه راګـني ده؛ ۲) د بهرت د مکتب د مېګ راګ یوه راګني ده.
سارنګ نټ (sārangnaṭ) نر.م. (مو.) سارنګ نات، دسنکیرن (مرکب) راګو څخه یو راګ دی.
سارنګۍ (sārangəy) ښځ.م. سارنګ، سارنګي، سارنګه، سارنګا، د هند د لرغوني موسیقۍ د آلو څخه یوه آله ده.
سارو (sārū) ص.نب ۱) چارو؛ ۲) کانګرېټ، شوته.
ساروان (sārwān) نر.م. ساربان، اوښبیه، اوښبون.
سارونټ (sārwanṭ) نر.م. (مو.) د ۱۸ ماترو یو تال دی.
ساره (sāra) نر.م. ۱) د سور مغیره شکل، د اوږدواله مقابل؛ ۲) ښځ.م. و ګ. سارا.
ساری (sāray) نر.م. ۱) بېناری، سیال، مخی، جوړه؛ ۲) برابر، مساوي، انډول.
ساري (sāri) ص.نب. سرایت کوونکی، خپرېدونکی، تیتېدونکی، پورې کېدونکی، ځرنی.

ساري توب (sāritōb) نر.م. برابروالی، مساوي توب، انډولتيا.

ساړ (sāṛ) ص. نر.م. وچ، سوړ، تړی.

ساړه (sāṛa) نر.ج. ۱) يخني، يخ؛ ۲) ښځ.م. پړی، رسی، رشمه.

ساړه تاوده (sāṛatāwda) نر.ج. د اوبو شکنه، ښوروالی، پياوه، ترخه اوبه.

ساړه سوی (sāṛswaay) نر.م. شاړ شوی، يخ شوی.

ساړی (sāṛay) ښځ.م. ساري، د هند او پاکستان د ښځو يو ډول خاص لباس دی.

ساز (sāz) نر.م. ۱) و.گ. موسيقي؛ ۲) بدل، غج؛ ۳) ص. نر.م. برابر، جوړ.

سازش (sāzıš) نر.م. ۱) جوړه، توافق، موافقت؛ ۲) توطئه، دسيسه.

سازښت (sāzast) نر.م. ۱) موافقه، جوړه، روغه؛ ۲) برابري، سمون.

سازمان (sāzmān) نر.م. اورگان، ارگان، تنظيم، تشکيل، مرتب او منظم جوړښت يا تشکيل.

سازنده (sāzında) ص. نب. (ج. سازندگان) ساز غږوونکی، سازکوونکی، سازوهونکي.

سازوار (sāzwār) ص. نر.م. ۱) کم عقله، احمق؛ ۲) ابله قدر له، لږغونډي له؛ ۳) برابر، متوسط.

سازو باز (sāzūbāz) نر.م. ډول و سينگار، زيب او زينت.

سازورکول (sāzwarkawal) مص. مت. هغه نغدي تاديه ده چې د قاتل له خوا د مقتول د ورثې ته ورکول کېږي.

سازول (sāzawal) مص. مت. ۱) جوړول، تيارول، روغول؛ ۲) سره پخلا کول.

سازي (sāzi) ص. نر.م. ۱) سازکوونکی، سازنده؛ ۲) موافقت، موافقه، سازش.

سازېدل (sāzedal) مص. ل. ۱) جوړېدل، رغېدل، برابرېدل؛ ۲) سره پخلا کېدل او جوړېدل.

ساشړل (sāšaṛal) مص.ل. هنځه وهل، هنجې وهل، ستې وهل، سترې ستومانه کېدل.

ساطور (sātūr) نر.م. و.گ. ساتول.

ساعت (sāʿat) نر.م. ۱) گړی، سات؛ ۲) وخت، د زمان يا وخت يو واحد دی.

ساغـر (sāğar) نر.م. ۱) پياله، پيمانه، د شرابو پياله، تونانگی؛ ۲) ع. د عارف زړه.

ساغری (sāğaray) نر.م. دخاروي کوناټی.

ساغرۍ (sāğaray) ښځ.م. يو ډول نقش او گنډنه ده.

ساقط (sāqıt) ص. نر.م. ۱) لوېدلی، بې اعتباره؛ ۲) سپک او ټيټ؛ ۳) نخسان شوی اولاد.

ساقطول (sāqıtawal) مص. مت. لوول، بې اعتباره کول، بې اتباره کول، غورځول.

ساقطېدل (sāqıtedal) مص.ل. لوېدل، د اعتبار نه وتل، د اتبار څخه غورځېدل.

ساقه (sāqa) ښځ.م. (بو.) تنه، ډنډر، درمه، نار، د يوه نبات تر ريښې پورته برخه.

ساقي (sāqı) ص. نب. ۱) اوبه وېشونکی، شراب وېشونکی؛ ۲) مج. ښشېر مرش.

ساک (sāk) نر.م. ۱) توبره، کڅوړه؛ ۲) و.گ. ساگ.

ساکا (sākā) نر.م.ج. مو. ساکاراگ، د هغو اته گونو راگونو څخه يو راگ دی.

ساک پاک (sākpāk) ص. نر.م.ج. ډېر پاک، پاک، سپېڅلی، صاف پاک، پاکيزه.

ساکت (sākıt) ص.نر.م.ج. پټ خولی، چوپ، غلی.

ساکټ (sākıt) نر.م. هغه برقي پرزه چې پلک په کې ننوځي؛ ۲) کاسه، غالي.

**ساکسوفون** (sāksōfūn) نر.م. (مو.) ساکسه فون: بجه خاني ته ورته د موسيقۍ یوه فلزي پوکېدونکې آله ده.

**ساکښ** (sākaṣ) ص. نر.م. ذيروح، ژوندیو، د سا خاوند، سالرونکی.

**ساکښل** (sākaṣal) مص. مت. سا ایستل، تنفس کول، نفس کښل، سبلوې ځکول.

**ساکن** (sākın) ص. نر.م. ۱) اوسېدونکی، مېشت؛ ۲) بې حرکته، ولاړ؛ ۳) گر. بې حرکته توری.

**ساکی** (sākay) نر.م. ویساکی، ایساکی، د گلابو د غوړېدو د موسم لومړنی وخت.

**ساگ** (sāg) نر.م. سابه، ساک، سبزي، سبزیجات، ترکاري، شینکی، شنه.

**ساگلو** (sāglu) نر.م. څاگله، دېگبر، پتیله؛ یو ډول المونیمي دېگ دی.

**ساگله** (sāgla) ښځ.م. ۱) وگ. ساگلو؛ ۲) مسي دېگ.

**ساگنی** (sāganay) نر.م. ۱) غاب، بشقاب؛ ۲) د وریجو یا د ترکارۍ تالۍ.

**سال** (sāl) نر.م. پسته شگه، د شگو توه.

**سالار** (sālār) نر.م. ۱) د لښکر مشر، سپهسالار؛ ۲) مشر، د قوم مشر.

**سالبه** (sālıba) ص. ښځ.م. ۱) سلبوونکې، اخیستونکې؛ ۲) لوځوونکې، پوستوونکې، د سالب مؤنث؛ ۳) من. منفي جمله، منفیه جمله.

**سالدانه** (sāldāna) ښځ.م. کالدانه، یو ډول دانه ده چې تر یوه کاله پورې نه ښه کېږي.

**سالک** (sālık) نر.م. ۱) لاروی، راروی، لارونی؛ ۲) زاهد، عارف، پارسا، پرهېزگار.

**سالگره** (sālgıra) ښځ.م. ۱) کالیزه، د زېږېدو د ورځې نمانځنه؛ ۲) تلین.

**سالم** (sālım) ص. نر.م. ج. ۱) روغ رمټ، جوړ، تندرسته؛ ۲) بې عیبه، بې نقصه، بشپړ؛

**سالن** (sālan) نر.م. کتغ، ساگینی، نگولی.

**سالنامه** (sālnāma) ښځ.م. کلنۍ، یو کتاب دی چې دیوه کال مهمې پېښې په کې لیکل کېږي.

**سالنډی** (sālanḍay) ښځ.م. وگ. سابندي[1].

**سالنډی** (sālanḍay) ص. نر.م. ساسوی، نفس سوخته.

**سالنک** (sālank) ص. نر.م. سالنگا، د موسیقۍ هغه مقام یا راگ چې د بل مقام رنگ ولري.

**سالنگي** (sālangi) ښځ.م. سیالنگي، د پښو د درد ناروغي.

**سالو** (sālū) نر.م. ورېښمین او سور پړونی، سور ټېکری، سوردوپی.

**سالولا** (sālūlā) ښځ.م. ځنې، ځونې، یو ډول ښځینه ټیکری دی.

**سالون** (sālūn) نر.م ۱) لوی دالان؛ ۲) لویه کوټه، تالار؛ د هر کلي، او... نندارې لویه خونه.

**ساله** (sāla) ښځ.م. ۱) هغه پوښل شوې سوړه چې په هغه کې کورت وچوي؛ ۲) هغه پټسونې چې د فصل د ځارنې لپاره په کې یو کس کښېني؛ ۳) ص. ښځ.م. منځنی، میانه، متوسط.

**سالی** (sālay) نر.م. وگ. سالن.

**سام** (sām) نر.م. ۱) هیبت، خوف، وېره، ډار، وهم؛ ۲) تأثیر، سیوری.

**سامان** (sāmān) نر.م ۱) اسباب، وسایل؛ ۲) د کور اسباب، لوښي او کودي؛ ۳) دبدبه، پرتم.

**سامانه** (sāmāna) ښځ.م. دبدبه، ځان ښکاره کونه، ځان ښودنه، غوره، دم، ډب.

**ساماني** (sāmāni) ښځ.م. د انگورو هغه اوږده جویه چې له هغې څخه نورو ډیچو ته اوبه ورځي.

**سامبولی** (sāmbōlay) ص. نر.م. شامبولی، پرتوګ ښکلی، لوڅ کونی، بې پرتوګه.

**سامع** (sāmiʿ) ص. نر.م. اورېدونی، اورېدونکی.

**سامعه** (sāmiʿa) ښځ.م. ۱) د سامع مؤنث، غوږ؛ ۲) د اورېدو قوه یا آلت؛ ۳) داورېدو حس.

**سامی** (sāmay) ښځ.م. د اوسپنې شلګی، د امسا یا ... تېره فلزي سر.

**سان** (sān) نر.م. ۱) یو ډول توکر دی؛ ۲) جوړښت، ساختمان، رغښت، اړاو؛ ۳) لیدنه، کتنه، نظر، رسم ګذشت، ننداره.

**سانچه** (sānča) ښځ.م. ۱) جندرۍ، دکارتوسو جوړولو قالب؛ ۲) ص. نب. نوی، نوی نزی، جدید.

**سانحه** (sāniha) ښځ.م. حادثه، پېښه، واقعه.

**ساندو** (sāndū) ص. نر.م. ویرګر، ساندې کوونکی؛ هغه څوک چې ساندې وهي یا ژاړي.

**سانده** (sānda) ښځ.م. ژړا، انګولا، فریاد، انبول، د غم ژړا، ویر، د ویر ژړا.

**ساندي** (sāndi) ص. نر.م. ساندې، د ډېرو شپو مېلمه.ي.

**ساڼډو** (sāndū) نر.م. ۱) اوښکي، باجه، د څو خویندو مېړېنه؛ ۲) بېکاره، تمبل او ډارن.

**ساڼډویچ** (sāndwič) نر.م. ساندویچ، یو ډول ساړه خواړه دي.

**ساڼده** (sānda) ښځ.م ۱) سنده، څرمښکی، سارانی سمساره؛ ۲) ص. نر.م. منېیمه، هغه مېښه چې د نر سنډا ختلو ته یې ... کېږي؛ ۳) نر.م. سنده، د مېښې نر، سنډا.

**سانسکریټ** (sānskrit) نر.م. سنسکریت، : لرغوني هندي ژبې او د اینډو آریایي پخوانیو ژبو : یوې ژبې نوم.

**سانسور** (sānsōr) نر.م. مطبوعاتي بندیز، یو ډول بندیز دی چې په ځینو وختونو کې پر زاډیو، اخبار، نشرات، فلمونو باندې لګېږي.

**سانګه** (sānga) ښځ.م. ۱) څانګه؛ ۲) نېزه؛ ۳) د قافلې ګرځنده هیأت.

**سانګی** (sāngay) ښځ.م. ښاخی، سکو، سکا.

**سانګی** (sāngay) نر.م. وروکی روغتون.

**ساني** (sāni) نر.م. ۱) داحمدشا بابا په وخت هغه چاته استعمالېده چې د نظامي تنظیم چارې به یې سرته رسولې؛ ۲) ص. نب. د سان څخه جوړ.

**ساڼ** (sāṇ) نر.م. مست غوایی یا آس.

**ساو** (sāw) نر.م. باج، ټېکس، مالیه، د سری د سر مالیات، سرانه مالیه.

**ساوار** (sāwār) نر.م. (مو.) د ځیر او بم والي چې تر پنځو کم او تر اووه زیات نه وي.

**ساونت** (sāwant) نر.م. (مو.) سامنت، د بهرت د مکتب مطابق د شري راګ یو پتر دی.

**ساوني** (sāwani) ښځ.م. د مېګ راګ یوه راګني ګڼل شوې ده.

**ساونیله** (sāwnila) ښځ.م. هغه رسی چې د اوښ د ګونډه کولو وروسته د هغه زنګون پرې تړي.

**ساوو** (sāwū) ص. نر.م. ساهو، ۱) آزاد، خپلواک؛ ۲) اصیل، شریف؛ ۳) څایي، د کور خاوند.

**ساووتوب** (sāwūtōb) نر.م. ۱) آزادي، خپلواکي؛ ۲) اصالت، ۳) شرافت؛ ٤) څایي توب.

**ساوی** (sāway) ص. نر.م. قوي نفس لوونکی آس.

**ساویسا** (sāwisā) نر.م. باور، اعتبار، یقین.

**ساه** (sāh) ښځ.م. و ګ. سا(۱).

**ساه پوهنه** (sāhpōhana) ښځ.م. و ګ. سایکالوجي

**ساهو** (sāhū) ص. نب. ۱) و ګ. ساوو، ۲) نجیب، شریف.

ساهي (sāhi) ص. نب. هېرجن، غافل، ناخبره.
سای (sāy) نر. م. شبله، نوی، لګده، خوړ.
سايره (sāyira) ښځ. م. يو ډول کوچنۍ مرغۍ ده.
سايز (sāyz) نر. م. ۱) اندازه؛ ۲) رقم، ډول.
سايقه (sāyiqa) ښځ. م. سائقه، د سائق مونث، مخ ته شړونکې، سوقوونکې.
سايکالوجي (sāykālōji) ښځ. م. اروا پوهنه، ساپوهنه: ۱) روحيات، روانشناسي؛ ۲) د يوه سړي د اعمالو، خواصو، افکارو جونګ.
سايکل (sāykal) نر. م. ۱) بايسکل؛ ۲) د پېښو يوه دوره؛ ۳) دور، دوران؛ ٤) د يوه اسماني ستوري مدار؛ ۷) د برق متناوب جريان يو بشپړ ياتام دوران.
سايکلون (sāyklōn) نر. م. و ګ. فشار
سايکو (sāykō) (مخ.) ۱) روح، اروا، سېلوړ؛ ۲) ذهن، مغز، دماغ..
سايکي (sāyki) ښځ. م. (رو.) ۱) انساني روح، بشري اروا؛ ۲) دماغ، ذهن.
سايګي (sāyagi) نر. ج ۱) شنه مميز، شنې وشکې ۲) ص. نب. د سيوري.
سايل (sāyel) ص. نر. م. و ګ. سيال[۲].
ساينس پوه (sāynspō) نر. م. ساينتېسټ، ساينس دان: ۱) طبيعي پوهنو عالم.
سايه (sāya) ښځ. م. و ګ. سېوری.
سايه وان (sāyawān) نر. م. چتری، چتر.
سايېز (sāyiz) ص. هغه غږ چې په وينګ کې يې ساييزوالي راځي. لکه په هندي کنسوننټونو (ph, kh, bh او...) کې ستمبده.
سايېزغړي (sāyizğari) ا. تنفسي غړي.
سايېزغونډال (sāyizğondāl) ا. تنفسي سيستم يا نظام.

سبا (sabā) ق. ۱) راتلونکې ورځ؛ ۲) نر. م. سهار.
سبات (sabāt) نر. م. ۱) دالان، منډو؛ ۲) هغه بالا خانه چې درې خواوې يې دېوال وي.
سباګون (sabāgūn) نر. م. و ګ. سباوون.
سباناری (sabānāray) نر. م. ناري، د سهار خوراک..
سباوون (sabāwūn) نر. م. سهار، ګهيځ.
سبايي (sabāyi) ق. ۱) سهار، ګهيځ، سباوون؛ ۲) سباته.
سبب (sabab) نر. م. ۱) علت، موجبه، عامل؛ ۲) وسيله، طريق؛ ۳) دخپلوۍ علاقه.
سبحان (sūbhān) نر. م. ۱) پاک، سپېڅلی، منزه؛ ۲) د لوی څښتن يو صفت.
سبر (sābar) نر. م. سرو، سروې، د سروې ونه.
سبری (sābray) نر. م. شوکور، شبکوړ..
سبزه (sābza) ښځ. م ۱) شنبلي، شنه ګياه؛ ۲) شين مغزې ختکی؛ ۳) سبزه پېغله يا ښځه.
سبزي (sabzi) ښځ. م. ترکاري، سابه، يو ډول خواړه دي چې له سابو څخه پخېږي.
سبسيډي (sābsidi) ښځ. م. سبسيدی، اعانه، مالي مرسته، د پيسو کومک، دولتي مرسته.
سبق (sābaq) نر. م. ۱) لوست، درس؛ ۲) پند، نصيحت، ښوونه؛ ٤) جزا، سزا.
سبک (sābk) نر. م. ۱) طرز، روش، لاره؛ ۲) اد. د افکارو د بيانولو خاص ډول.
سبنه (sabana) ښځ. م. قناعت، سوده، تسلي.
سبوتاژ (sabōtāž) نر. م. وران کاري، تخريب، په لوی لاس وېجاړونه.
سبوس (sabūs) نر. م. ج. ۱) داړو بوس، د اوړو غزبوکي، سي؛ ۲) دوچې شوې ډوډۍ ټوکوري.
سبوسک (sabusak) ص. نر. م. اروا وړی، وړستر ګی.

**سبونکه**( sabōnaka ) ښځ.م. سابه اوگره ،دخوړینو وریجو او سبوځخه جوړ شوی خواړه.

**سبوڼی**( sabōṇay ) نر.م. خمیره، د اوړو خمیره.

**سبها** ( sabhā ) نر.م. (تا.) د عوامو مجلس، د رېگوېدا د عصر د یوې عوامي جرگې نوم.

**سبې** ( sabē ) ښځ.م. یو ډول بوټی دی چې پاڼې یې د غنمو د پاڼو په څېر دي او اومې خوړلې کېږي.

**سبیره** ( sabirā ) ص. ښځ.م. سکه، د سکه د کلیمې سره یو ځای د تاکید په ډول استعمالېږي.

**سبیل** ( sabīl ) نر.م. ۱) لاره، طریقه، روش، دود؛ ۲) نېغه او سمه لاره؛ ۳) قرباني، نذر.

**سپ** ( sap ) نر.م. ۱) د کار پای ته رسونه؛ ۳) د بېړیو په لوبه کې د ټولو بېړیو گټنه.

**سپاچه**( sapāča ) ښځ.م. سوپه، صفه، چتره، چوتره.

**سپاخه**( spāxa ) نر.ج. د ټوکر یو ډول لاسي گنډون.

**سپارتاک** ( spārtāk ) نر.ج. چیله تاک، سواره تاک.

**سپارخول**( spārxōl ) نر.م. سپارځی، د پال کونده، د پالې کونده.

**سپارښت** ( spāraṣt ) نر.م ۱) سفارش، سپارښتنه، سپارنه، فرمایش؛ ۲) د انگورو د جوېې نه د خاورو راویستل.

**سپارښتلیک**( spāraṣtlik ) ا. سپارښتي پاڼه، سفارشنامه.

**سپارښتي**( spāraṣti ) د سپارښت وړ، توصیوي.

**سپارل** ( spāral ) مص.مت. حواله کول، تسلیمول، ورکول، وررسول.

**سپارنځی** ( spāranjay ) نر.م. گدام، انبارخانه، تحویلخانه.

**سپاره**( spāra ) ښځ.م. ۱) سسپاره، سپار، پال؛ ۲) ناسور، پربدو اوښتی تپ، مزمن شوی؛ ۳) و گ. : سېپاره؛ ٤) نر.ج. سواره، د سپور جمع.

**سپاړه** ( spāṛa ) ص. ښځ.م. سوپړه، د کور په چارو کې لټه او بېکاره ښځه یا نجلۍ.

**سپانچه** ( spānča ) ښځ.م. ۱) ډبه، صُفه، چوتره؛ ۲) د سپېلني بوټی.

**سپاند** ( spānd ) نر.م. بې قدره، د سپک د کلیمې سره یو ځای د تأکید لپاره استعمالېږي.

**سپانده** ( spānda ) نر.م. سپېلنی، ۱) د سپېلني بوټی؛ ۲) د سپېلني د بوټی توري دانې.

**سپایي** ( spāyi ) نر.م. ۱) سپاهي، عسکر؛ ۲) ص. نر.م. چمتو، تیار، آماده.

**سپته** ( spatá ) ښځ.م. اوسپنیزه آله ده چې د مزري ځېلۍ وریاندې جوړوي.

**سپخ** ( spáx ) نر.م. و گ. لپانکی.

**سپخول** ( spaxáwál ) مص. مت. سپرخول، غوټه پرانیستل، سپړول، د گنډل شوي درز او ټکونو سپړل، درز خلاصول.

**سپخېدل**( spaxédál ) مص. ل. سپرخېدل، سپړېدل، خلاصېدل، بېلېدل، د گنډل شوي درز یا ټک ببرته خلاصېدل.

**سپر** ( spār ) نر.م. و گ. ډال.

**سپرانو** ( saprānō ) ص. نب. مو. و گ. زیر٤).

**سپرتیا** ( spartyā ) ښځ.م. سپورتوب، سپارلي، سپرلي، سپربدنه.

**سپرځی** ( sparjay ) ښځ.م. یو ډول اغزنه ونه ده.

**سپرخوټ** ( sparxwaṭ ) نر.م. یو ډول خړه مرغۍ ده چې د پسرلي په وخت کې راپیدا کېږي.

**سپرخوځی** ( sparxōjay ) نر.م. هغه سوری چې د کېږدۍ د دوو تاگیو د دوو سپېرخیو ترمنځ پاتې کېږي.

**سپرخی** (sparxāy) نر.م. ۱) سپېرخی، لويه ستن ده چې کېږدۍ وربانديې ګينډه کېږي؛ ۲) ص. نر.م. کلک، وچ، ټينګ (شی).

**سپرخيغ** (sparxiğ) نر.م. لرګين يا فلزي ستن وي چې ښځې خپل ويښتان پرې ببلوي.

**سپرغه** (sparğa) ښځ.م. ۱) د کاربېز څاه؛ ۲) ګل، انځور؛ ۳) د اوبو په منځ کې وچ ځای؛ ٤) د پټي ترک يا ترانګه.

**سپرغی** (sparğay) ښځ.م. د اور بڅرکی، د اور ګل، د اور ذره، بڅرکی.

**سپرغېږی** (sparğeẓay) نر.م. هغه کلک ځای چې د پټي د دوو سرونو په منځ کې پاتې کېږي او دوه ځلي کولبه وربانديې تېرېږي.

**سپرک** (spārak) نر.م. يو ډول بوټی دی چې ژېړ رنګ ورڅخه په لاس راځي.

**سپرکښ** (sparkaṣ) ص.نر.م ۱) سپر اېستونکی، مدافع؛ ۲) مج. سرتېر، مېړنی.

**سپرلنی** (sparlanāy) نر.م. ۱) رساله يي، د سپرو پوليسانو يو غړی؛ ۲) ص. نر.م. پسرلنی، بهاري.

**سپرلنۍ** (sparlanay) ښځ.م. ۱) رساله، رساله سوار، د پوليسو سواره ټولۍ؛ ۲) په بدۍ کې ورکړه شوې پېغله.

**سپرلو** (sparlō) ښځ.م ۱) د آس ځغلونه؛ ۲) د اسانو د ځغلولو ميدان؛ ۳) د سپرو ډله.

**سپرلوبېړی** (sparlòberay) ا. سورلۍ وړونکې بېړۍ، مسافر وړونکې بېړۍ.

**سپرلی** (sparlāy) نر.م. پسرلی، بهار، څرمونی.

**سپرلي** (sparli) ښځ.م. سورلي، سپرېدنه.

**سپرمغ** (sparmağ) نر.م. غوړتکی، غوړتپی، د غوړو لکه يا داغ.

**سپرمېغی** (spārmĕğay) نر.م ۱) و ګ. سپرمغ؛ ۲) و ګ. سپرغی.

**سپرمينه** (spārmayna) ص. ښځ.ج. معابر، د کار د قوانوو افراد.

**سپرول** (spārāwəl) مص. مت. سورول، سپورول.

**سپری** (sapāray) ښځ.م. يو ډول خړ بوټی دی چې په ببوره ناکه ځمکه کې شين کېږي.

**سپرېدل** (sparedál) مص. ل. سورېدل، سپورېدل.

**سپرينګ** (spiring) نر.م. و ګ. پنر.

**سپړ** (spáṛ) ص. نر.م. غوړېدلی، خلاص.

**سپړدل** (spaṛdál) مص. مت. ۱) خلاصول، پرانيستل؛ ۲) سپخول، سپړودل.

**سپړل** (spaṛal) مص. مت. ۱) سپړول، خلاصول، غوړول، پرانستل؛ ۲) سپخول، سپړودل.

**سپړنه** (spaṛana) ا. کيندنه، کنستنه، شرح.

**سپړنيزه ژبپوهنه** (spaṛanizažəbpōhana) ا. تشريحي ژبپوهنه.

**سپړنی** (spaṛanáy) ښځ.م. (تن.) شارحه، کولن، په ليک نښو کې دا نښه ده (:) چې د يوه لغت يا فقرې د تشريح يا وضاحت لپاره کارېږي.

**سپړی** (spaṛáy) ښځ.م. پانه، لرګين ميخ دی چې د سپارې تير د کوندې سره پرې ټينګوي.

**سپړېدل** (spaṛedál) مص. ل ۱) سپنېدل، غوړېدل؛ ۲) سپخېدل.

**سپږجن** (spaẓján) ص. نر.م. سپږن، شپږک، څوک چې سپږې لري.

**سپږمه** (spaẓmá) ښځ.م. سږمه، تميزی، سپږمه، سوږمه، د پزې سوری.

**سپږه** (spáẓa) ښځ.م. شپږه، يوه وړه خزنده ده.

**سپږی** (spaẓáy) ښځ.م. شپږی، وړه حشره ده چې د غنمو په دانو کې پيدا کېږي او غنم خرابوي.

**سپښته** (spaṣta) ښځ.م. ۱) ببوږی، بجله: ۲) آر. ښنسب، بنیاد.

**سپغزه** (spağza) ښځ.م. وگ. سپوغزه.

**سپغول** (spığōl) نر.م. وگ. سپېغول.

**سپک** (spək) ص. نر.م. ۱) لږ وزن لرونکی، کم وزنه؛ ۲) مج. بې عزته، بې پته.

**سپکاوی** (spəkāway) نر.م. وگ. سپکه.

**سپک پاسک** (spəkpāsək) ص. نر.م. بېخي سپک، بې باکه، ډېر سپک.

**سپک سپاند** (spəkspànd) ص. نر.م. توهین شوی، سپک شوی، بېعزته شوی.

**سپکوالی** (spəkwālay) نر.م. ۱) سپکتیا، سپکتوب، د تول لږوالی؛ ۲) بې عزتي، سپکونه، توهینونه.

**سپکول** (spəkawál) مص. مت. ۱) کم وزنه کول، تول لږول؛ ۲) بې عزته کول.

**سپکه** (spəka) ښځ.م ۱) اسپکه، یو ډول بوټی دی؛ ۲) ص. ښځ.م ۱) د سپک مونث؛ ۲) سپکاوي.

**سپکه خوله** (spəkaxwala) ښځ.م. بې باکه خوله ډوزنه خوله، سپوره خوله.

**سپکه سپوره** (spəkaspòra) ښځ.م. بې ځایه خبره، ډوزنه خبره.

**سپکه سترگه** (spəkastarga) ښځ.م. بې احترامي، حقارت، اهانت.

**سپکېدل** (spəkedəl) مص. ل. ۱) بې عزته کېدل، توهینېدل؛ ۲) تول لږېدل، وزن کمېدل.

**سپل اغزی** (spalāğzay) نر.م. اغزکی، یو تریخ اغزی لرونکی بوټی دی.

**سپل غټ** (spalğaṭ) نر.م. د سپي غول.

**سپلکی** (spalkay) نر.م. هغه پسه چې پښې یې سپینې او نور بدن یې سور وي.

**سپلگ** (spilag) نر.م. میوه، وزه یې وازده. د وزې او د غوایی د وازگې غوړي.

**سپلگه** (spəlga) ښځ.م. د ابر ک تیږه.

**سپلم** (spalam) نر.م. ۱) گیدړه؛ ۲) ص. نر.م. چوغلگر، چغلگر.

**سپلمه** (spəlma) ښځ.م. گوگوشتې، گوگوشتو، کوکوشته، قمری، خړه کوتره.

**سپلمی** (spəlmay) نر.م. هغه آس چې پښې او تندی یې سپین وي.

**سپلمۍ** (spəlmay) ښځ.م. ۱) یو تریخ پلن پاڼې خړ رنگه سارانی بوټی دی چې پې هم کوي؛ ۲) هغه سپۍ چې وار یې راوړی وي.

**سپم** (spam) نر.م. سلیم، د ستنې سوری چې تار ترېنه ایستل کېږي.

**سپما** (spamā) نر.م. پس انداز، سپمونه، زېرمه، ذخیره.

**سپمایي** (spamāyi) ص. د سپما اړوند، پاسره یي، زېرمه یي.

**سپمبوټی** (spambūṭay) نر.م. ترخه، یو ډول غرنی بوټی دی.

**سپموک** (spamūk) ص. نر.م. بچت والا، سپمی، بچت کوونکی، پس انداز کوونکی.

**سپمول** (spamawəl) مص. مت. ۱) بچتول، پس انداز کول؛ ۲) سرپول، دربغول.

**سپمی** (spamay) نر.م. ۱) سپېلومی، سپونی، سپونی، مرسپمی (وگ. سپونی)؛ ۲) ص. نر.م. وگ. سپموک.

**سپمېدل** (spamedəl) مص. ل. ۱) بچت کېدل، پس انداز کېدل؛ ۲) دربغېدل، سرپېدل.

**سپنخړی** (spanxaṛay) نر.م. اوسپنخړی، اوسپنخټ، د اوسپنې خټ.

**سپندخ** (spandax) نر.م ۱) دسنیو یا انځیو غونډاري ۲) غونډسکه، پنډوس؛ ۳) ډډی، دبوسوخوسی.

**سپندوخه** (spandoxa) ښځ.م. د ګیند لوبه.

**سپنګېر** (spanger) نر.م. یو ډول بوټی دی چې د چنګک غوندې اغزي لري.

**سپڼ** (spaṇ) نر.م. سوڼ، غږ، حرف، کلیمه.

**سپڼ ختی** (spaṇxâtay) نر.م. په جوال باندې یو ډول منحني شکله نقش یا انځور.

**سپڼسپڼګی** (spaṇspaṇgay) نر.م. سپڼسکی، د بندونو رګ، عرق الرباط.

**سپڼسکی** (spaṇsakay) نر.م ۱) و ګ. سپڼسپڼګی؛ ۲) یو ډول واښه دي چې شین ګل کوي؛ ۳) لنډ تار؛ ٤) د مېږو او پسونو یو ډول ناروغي ده.

**سپڼسی** (spaṇsay) نر.م. تار، نخ، مزی، رشته.

**سپڼسین** (spaṇsin) ص. نر.م. د سپڼسی، نخي، پنبه يي، تاري.

**سپڼکی** (spaṇkay) نر.م. سپرغی، بڅرکی، د اور ذره، د اور بڅری، د اور سپرغی.

**سپڼول** (spaṇul) مص. مت. ۱) سپڅول، سپړل، سپڼل، په غور یا دقت سره جلا کول؛ ۲) څېړل.

**سپڼی** (spaṇay) نر.م. ۱) سپېلومی، یو ډول جلدي ناروغي ده؛ ۲) په اوبه شوې ځمکه کې وچ پاتې شوی ځای.

**سپڼېدل** (spaṇedәl) مص.ل. ۱) سپړېدل، سپڼېل کېدل؛ ۲) د جامو درز خلاصېدل.

**سپوټکی** (spoṭakay) نر.م ۱) سپوټی، بې همته، پست سړی؛ ۲) ټیکری، پوړنی؛ ۲) هغه ټوکر چې د دېګ په سر اچول کېږي.

**سپوټنیک** (spuṭnik) نر.م. د ځمکې مصنوعي سپوږمۍ.

**سپوخځه** (spoxja) ښځ.م. و ګ. سپوغزه.

**سپوخسه** (spoxsa) ښځ.م. و ګ. سپوغزه.

**سپور** (spor) ص. نر.م ۱) سوار، سور، د پلي نقیض. ۲) وچ، سپېره، بې غوړو؛ ۳) د سپکې خولې او بدې روېې خاوند؛ ٤) نر.م. ګودله، دوه سرې کولنګ؛ ٥) د غیر زوجي تکثر عامله حجره.

**سپورپوځ** (sporpawj) نر.م. سپور یا سور لښکر، سواره.

**سپورټ** (sporṭ) نر.م. ورزښت؛ هر هغه تمرین چې دخوښۍ، تفریح او د توجه داړونې لپاره کېږي.

**سپورچلم** (sporčılam) نر.م. د چرسو چلم.

**سپورخور** (sporxor) ص. نر.م. ۱) هغه څوک چې تل بې غوړو او سپوره ډوډۍ خوري؛ ۲) مج شوم، بخیل.

**سپورخولی** (sporxulay) ص. نر.م. پوچ خولی، بد ژبی.

**سپورسترګی** (sporstargay) ص. نر.م. بې حیا، سپین سترګی، بې شرمه.

**سپورغټه** (sporğata) ښځ.م. د اور سکروټه.

**سپورغۍ** (sporğay) ښځ.م. ۱) یو ډول ونه ده؛ ۲) د دروازې یا وره ګل میخې.

**سپورکه پلی** (sporkapalay) نر.م. د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

**سپورنغری** (sporngaray) نر.م. جګ او هسک نغری، د ځمکې د مخ نغری.

**سپوروالی** (sporwalay) نر.م. ۱) وچتوب، بې غوړتوب؛ ۲) ترینګل توب؛ ۳) بده رویه لرنه.

**سپورول** (sporawәl) مص. مت ۱) ډوډۍ وچول، کتغ بې غوړو کول؛ ۲) و ګ. سپرول.

**سپوره** (spora) ص. ښځ.م ۱) وچه ډوډۍ؛ ۲) هغه ډوډۍ چې کتغ یې غوړ یې لږ وي؛ ۳) بې کتغه ډوډۍ؛ ٤) مج. سخته او نامناسبه خبره.

**سپورې** (spore) ص. ښځ. ج. بدې او نامناسبې خبرې، دخولې جنګ.

**سپورېدل** (sporedal) مص.ل. ۱) سپړېدل؛ ۲) دړه‌دړې وچېدل، کتنغ بې غوړو کېدل.

**سپورې ستغې** (sporestage) ص. ج. بدورد، نامناسبې خبرې، بدې خبرې.

**سپوږمۍ** (spozmay) ښځ.م. میاشت؛ (جغ.) د سماوي اجسامو څخه یو جسم دی چې دځمکې قمر ګڼل کېږي.

**سپوږمۍ بوټی** (spozmaybutay) نر.م. یو ډول ګردی بوټی دی چې ابي ګل کوي.

**سپوږمۍ تندره** (spozmaytandra) ښځ.م. خسوف، تندره، سپوږمۍ نیول.

**سپوږمۍ ګل** (spozmaygwal) نر.م. یو ډول نقش دی چې د وریښمو سره خامک کېږي.

**سپوږمیز** (spozmiz) قمري، سپوږمۍ ته اړوند.

**سپوږمیزکال** (spozmizkal) ال. قمري کال.

**سپوغان** (spogan) نر.م. یو ډول کوچنی سپین بخن بوټی دی چې سپین ګل کوي.

**سپوغزه** (spogza) ښځ.م. سپوخڅه، سپوخسه، سپغزه، سپوخڅه، سپوخت، سپږغز، مثانه.

**سپول** (sapawal) مص. مت. په اسهال کې ډېر عمل کول، نس بهول، د نسه زیات ایله کول.

**سپون** (spun) نر.م. ۱) هجا، تلفظ؛ ۲) هغه دانه یا ورځ چې په پوله کې د دوو پټیو ترمنځ وي.

**سپونول** (spunawal) مص. مت. و ګ. سپنول.

**سپونی** (spunay) نر.م. سپونی، سپومی، یو ډول جلدي ناروغي ده

**سپونېدل** (spunedal) مص.ل. و ګ. سپنېدل.

**سپه سالار** (spasalar) نر.م. لوی قوماندان، مشر، د لښکر رئیس، سپاه سالار.

**سپی**[1] (sapay) نر.م. هغه لرګی چې د ارهټ څرخ وربانديې تاړه کېږي.

**سپی**[2] (spay) نر.م. یو ډول تي لرونکی او له غوښو خوړونکو حیواناتو څخه دی.

**سپیازول** (spyazawal) مص.مت. اولاد نخسانول، د حمل سقط، اولاد زیانول.

**سپیازه** (spyaza) ص. ښځ.م. بې ځایه، هغه ښځه چې اولاد نقصان کړي.

**سپیازېدل** (spyazedal) مص.ل. زیانېدل، نخسانېدل، نقصانېدل.

**سپیاکه** (spyaka) ښځ.م. ۱) د میوې دوړې؛ ۲) اچه، د لرګي دوه ښاخې.

**سپیتانون** (spitanon) نر.م. د سپین نژاد خاوند.

**سپیپڼ** (spipan) نر.م. نسترن، خورچ.

**سپیتانه** (spitana) ښځ.م. ۱) بې غیرتي، پستي؛ ۲) زیات حرص.

**سپیت سپیت** (spitspit) نر.م. یو اواز دی چې پر سپي باندې د سپي د ختلو لپاره ویل کېږي.

**سپېته** (speta) ښځ.م. ۱) پانه، فانه؛ ۲) د څپلیو د اوبدلو سیخک.

**سپیتی** (spitay) نر.م. رذیل، پست (سړی).

**سپېټه** (speta) ق. ۱) هڅکله، کوروټ، له سره؛ ۲) ساپټه، ټول، تمام.

**سپېڅ** (spec) ص. نر.م. صاف، خالص، بې غشه.

**سپېڅاند** (specand) ص. پاکساز، پاکسازي، خالص خوښی.

**سپېڅل** (specal) مص. مت. صافول، پاکول.

**سپېڅلتوب** (specaltob) نر.م. پاک توب، پاک لمني، پاکي، عفت.

**سپېڅلتیا** (specaltya) ښځ.م. ۱) پاکي، ستره‌ګی، صافوالی؛ ۲) تقدس.

**سپېڅلځای** (specaljāy) ا. سپېڅلي ځای، سپېڅلی (مقدس) ځای.

**سپېڅلی** (specalay) ص. نر.م. ۱) پاک، ستره؛ ۲) صادق، صاف (سړی)؛ ۳) مقدس.

**سپېڅنه** (specana) ښځ.م. پاککاري، پاکسازي، ځانونه.

**سپېدار** (spedār) نر.م. سفېدار، یو ډول ونه ده.

**سپېدچه** (sapedča) جن. یو ډول غنم دی.

**سپېدکی** (spedkay) ښځ.م. یو ډول سپین بخن بوټی دی چې سر یې پلن او بېخ یې نری وي.

**سپېدلی** (spedalay) ص. نر.م. ۱) ساده سړی، ناپوه؛ ۲) لنډ اندی، لنډ فکره.

**سپېدوداغ** (spedodāğ) نر.م. سپېده داغ، صبح صادق، سپېدې.

**سپېده** (sapeda) ښځ.م. سفېده، یو ډول سپین پوډر دی چې ښځې یې پر مخ د ښکلا لپاره وهي.

**سپېدې** (spedē) ښځ.ج. د سبا رڼایي.

**سپېدې چاود** (spedēčāwd) نر.م. سپېده چاود، سهار وختی.

**سپېرخوټ** (sperxwāt) نر.م. یو ډول تریخ کرجنی بوټی دی چې سپین ګل کوي.

**سپېرخولی** (sperxūlay) ص. نر.م. ۱) بدخولی، بدچ خولی؛ ۲) ختلی، سپېره.

**سپېرخی** (sperxāy) نر.م. و.ګ. سپېرخی.

**سپېرشلی** (sperṧalay) نر.م. یو ډول سابه دي.

**سپېرکونډکه** (sperkūndaka) ښځ.م. ملاګکه، سپېرکونډه، کوبله، سپېره کوچنۍ مرغۍ ده.

**سپېرکی** (sperkay) ښځ.م.ج. جواني، یو ډول سپېره بوټی دی چې دانو یې کورنی دوا ده.

**سپېرکی** (sperkāy) ص. نر.م. ۱) خاکساره سړی؛ ۲) د سپېره مصغر چې د خړ رنګې مانا لري.

**سپېرګل** (spergūl) مص. مت. ښکنځل کول، کنځا کول، بدورد ویل.

**سپېرګه** (sperga) ښځ.م. زیاره، کنځا، ښکنځا.

**سپېرلټ** (sperlāt) ص. نر.م. ۱) سپېره، په خاورو ککړ، خړ؛ ۲) سست، ناراسته.

**سپېرلکی** (sperlakāy) نر.م. هغه بیږۍ چې عمر یې دوو کلو ته نیږدې وي.

**سپېرلم** (sperlām) نر.م. خړ لمی، سپېره لمی، خړ رنګې لومبړه، خړه ګیدړه.

**سپېرمخی** (spermaxay) ص. نر.م. سپېره مخی، بدبخت، بدمرغه، بدطالع.

**سپېرمرغی** (spermarğay) نر.م. تبی، سرزېړی، سپېره کتنغ.

**سپېرنګ** (spering) نر.م. و.ګ. پېنر.

**سپېرنی** (sperānay) نر.م. یو ډول خړ بوټی دی چې کوچنۍ پاڼې لري.

**سپېروني** (sperūnay) نر.م. د ښنې چای، یو ډول نبات دی چې چای غوندې یې ایشوي.

**سپېرووني** (sperawūnay) نر.م. سپېره، برنه، سپېره غونی، هغه اوړه چې په هغه کې خیشته شوې اوړه غلولي کوي.

**سپېره** (sperā) ص. نر.م.ج. ۱) خړ، په خاورو ککړ؛ ۲) خړ رنګ حاځي؛ ۳) تباه، وران؛ ٤) بدمرغه.

**سپېره توب** (speratob) نر.م. ۱) سپېره والی، بدمرغي؛ ۲) خړ الی، په خاورو ککړوالی.

**سپېره ګهیځ** (speragahīz) نر.م. شنه خړه، خړ ګهیځ، سور ګهیځ، شین سهار.

**سپېرې اوبی** (spereobay) ودي، پلینوبی.

**سپېږمه** (spežma) ښځ.م. و.ګ. سږمه.

**سپېس** (spes) نر.م. ۱) (تن.) و.ګ. فاصله؛ ۲) هن. و.ګ. مناظر.

**سپي ستوری** (spistoray) نر.م. فضول، چتي، بدخولی (سړی).

**سپېسته** (spesta) ښځ.م. تسروه خميره، تروشه خميره، تاکه يا تږکه خميره.

**سپېسکی** (speskay) نر.م. يو ډول پلن بوټی دی.

**سپېښته** (spesta) ښځ.م. د نس پرده.

**سپېغود** (speğōd) نر.م. سپيغود، يو ډول غرنی بوټی دی چې سپين گل کوي.

**سپېغول** (speğōl) نر.م. سپرزه، اسپېغول، سپغول، اسفرزه، يو ډول طبي بوټی دی.

**سپېگانه** (spegāna) ښځ.م. و گ. سپيتانه.

**سپېلنی** (spelanay) نر.م. سپانده، سپلنی، يو ډول بوټی دی چې توري وړې وړې دانې کوي.

**سپي لوبه** (spilōba) ا. سپي جنگونه، سگبازي.

**سپي لوبی** (spilōbay) ص. سپي جنگوونکی، سگباز.

**سپي لوښی** (spilōṣay) سپي خوبه، سپي مخی.

**سپي مخی** (spimaxay) ص.نر.م. ۱) بې پاسه بې لحاظه؛ ۲) بېشرمه، بېحيا.

**سپي مرگو** (spaymargō) ښځ.م. د سپيو ناروغي.

**سپېمه** (spema) ص.ښځ.م. ۱) هغه سپۍ چې سپي غواړي؛ ۲) مج. بدلمنه او بې عفته ښځه.

**سپېمه توب** (spematōb) نر.م. سپېمه والی، سپۍ چې د نر سپي په طلب کې وي.

**سپين** (spin) ص. نر.م. ج. ۱) سپين رنگ، د شيدو رنگ؛ ۲) پوست شوی؛ ۷) عفيف، پاک لمنی؛ ۸) مج. رښتيانی؛ ۹) روک، صريح.

**سپين اغزی** (spinağzay) نر.م. يو ډول سپين بوټی دی چې کوچيان يې د ايرو ځخه د کاليو د مينځلو لپاره کار اخلي.

**سپيناوو** (spināwu) ص. پاککاري، پرېکړه کوونکی.

**سپيناوی** (spināway) ا. رڼاوی، سپينتن، پرېکړه، داوري.

**سپين باز** (spinbāz) نر.م. ۱) يو ډول باز دی چې سپينې ښکې لري؛ ۲) مج. صادق سړی.

**سپين بوټی** (spinbūṭay) نر.م. يو ډول سپين رنگی بوټی دی.

**سپين پايڅه** (spinpaycā) ص. ښځ.م. ۱) باکره نجلۍ؛ ۲) هغه نجلۍ چې د دوو قومونو ترمنځ د شخړې سبب شي؛ ۳) سپين پاڅې، هغه ښځه چې بې د واده له شرايطو مېړه ته وسپارله شي.

**سپين پټکی** (spinpaṭkay) ص.نر.م. زېر ځادری، په پښتني ټولنه کې د ملا، اخوند او ميا اعزازي لقب دی.

**سپين تاوده** (spintāwda) نر.ج ۱) يو ډول گردی او سر يې تېره کورت دي؛ ۲) کورت او غوړي.

**سپين ټېکری** (spinṭekray) ښځ.م. هغه ښځه چې د دوو قومونو ترمنځ د جگړې سبب شي.

**سپين چوتار** (spinčawtār) نر.م. سپينه پگړی، سپينه بگړی، (و گ. سپين پټکی).

**سپين ځی** (spinjáy) نر.م. سپنځی، قلعي، يو ډول فلز دی چې مسين لوښي پرې سپينوي.

**سپين خړی** (spinxáṛay) نر.م. و گ. سپنخړی.

**سپين خولی** (spinxúlay) ص. نر.م. سره خوله، بې ږيرې، هغه هلک چې ږيره يې نه وي راغلې.

**سپين دروبی** (spindrōbay) ص. نر.م. ۱) ښه سړی، مصلح، مخور؛ ۲) هغه ځوک چې سپينې جامې اغوندي.

**سپين دروبتيا** (spindrōbtyā) ښځ.م. عزت، مشرتيا، عزتمندي.

سپين زر (spínzar) نر.م.ج. نقره، سيلور.

سپين زرلی (spínzarlay) ص. نر.م. په سپينو زرو پټ، په سپينو زرو پوښ شوی.

سپين زړه (spínzṛə) توصيفي ترکيب، صادق، پاک زړی، رښتونی.

سپين ږږوکی (spínẓarúkay) نر.م. ۱) يو ډول بوټی دی؛ ۲) د سپين ږيری مصغر.

سپين ږيرتوب (spínẓirtōb) نر.م. بوډاتوب، زړتوب، سپين ږرتيا.

سپين ږيری (spinẓíray) ص.نر.م. ۱) بوډا، زوړ، مسن؛ ۲) مشر سړی.

سپين سبا (spínsabā́) نر.م. ۱) رڼا ګهيځ، رڼا سبا؛ ۲) تالا، لوټ (لکه د کور).

سپين سپېڅلی (spínspecálay) ص. نر.م. پاک، سوتره، پاکيزه، سوچه.

سپين سپرغی (spínspárǧay) نر.م. يو ډول سابه دي چې اومه خوړل کېږي.

سپين سترګی (spínstárgay) ص. نر.م. بې حيا، بېشرمه.

سپين سر (spinsár) نر.م. ۱) هغه سر چې وېښتان يې سپين وي؛ ۲) بوډا، زوړ (دښځو لپاره).

سپين سرتوب (spinsartōb) نر.م. بوډاتوب، زړبوديا، زوړ توب، زړوالی (د ښځې).

سپين سرونه (spínsarūna) پ. ک. په مرکه کې بې طرفه خلک چې حقيقت ورڅخه څرګندېږي.

سپين شونډوخاني (spínšūnḍúxāni) نر.ج. يو ډول اوږده سپين رنګي کندهاري انګور دي.

سپين کب (spínkāb) نر.م. شيرماهي.

سپين کت (spínkat) نر.م. تباشير.

سپين کشمش (spínkišmis) نر.ج. يو ډول خوړ انګور دي چې دانه يې روچه ته ورته ده.

سپينکی (spínkáy) ښځ.م. ۱) نری وازګه، د نس وازده؛ ۲) توره؛ ۳) د موخې په منځ کې ګل زبری. ٤) د وازدې وړې وړې ټوټې.

سپينکی (spínkáy) نر.م ۱) سختو، د پسه کولمه له تکېدلې غوښې څخه ډکوي او وروسته تر وچېدو يې پخوي؛ ۲) پچ کولمه، غوړه کولمه.

سپين ګهيځ (spíngəhij) نر.م. روڼ ګهيځ، سپين سهار، سپين سوبيل.

سپين لمنې (spínlamáne) ص. ښځ.م. پاکه ښځه.

سپين لمني (spínlamaní) ښځ.م. پاکي، عفت، پاک لمني.

سپين لمی (spínlə́may) نر.م. ۱) د لومبړې په څېر يو ځناور دی؛ ۲) د کوترو يو ډول دی.

سپين مخ (spínmàx) نر.م ۱) ښکلی مخ؛ ۲) مج. بې ګناهي، معصوميت.

سپين مخي (spínmàxi) ښځ.م. بې ګناهي، معصوميت.

سپين مخی (spínmàxay) ص. نر.م. رښتين، صادق، بېګناه، معصوم.

سپين نينولی (spínninawə́lay) نر.م. چلو، چلاو، سپينې وريجې پخول.

سپينوالی (spínwālay) نر.م. ۱) د توروالي ضد؛ ۲) صفايي، رڼايي؛ ۳) صداقت، رښتينوالی.

سپين وبره (spínwābra) ص. نب. سپين بخن، سپين وشمه، سپين وزمه.

سپين وروی (spínwrázay) ص. نر.م. هغه آس چې ورور يې سپين وي

سپينول (spíṇawə́l) مص. مت. ۱) پوست لېرې کول؛ ۲) د لوښو يا خونې يا ... روښانه کول؛ ۳) تصفيه کول، کومه موضوع روښانه کول.

سپین ولی (spinwālay) نر.م. سپېدار، چنار.
سپین ویل (spinwayal) مص. مت. رښتیا ویل، صاف و صریح ویل، په ډاګه ویل.
سپینه (spina) ښځ.م. ۱) پله؛ ۲) وازده، وازګه؛ ۳) د سپینو زرو سکه؛ ۴) د سپین مونث شکل.
سپینه دوړه (spinadūṛa) ښځ.م. سپین پوډر، د هندوانو د مړو د سوځولو وروسته پاتې ایره.
سپینې (spine) ښځ.ج. ۱) پلې، د پسوندې د پاسه پلې؛ ۲) وازګې، وازده.
سپینی (spinay) نر.م. د دعوې پرېکړه او فیصله.
سپین توری (spintōray) نر.م. تحقیق، اثبات.
سپینېدل (spinedál) مص. ل. ۱) پوست لېرې کېدل؛ ۲) د لوښو یا خونو سپینېدل؛ ۳) مج. تصفیه کېدل، څرګندېدل، فیصله کېدل.
ست (sat) نر.م. ۱) بلنه، سلا؛ ۲) ناموس، عزت.
ستا (stā) ض.م. د تا، د مفرد مخاطب اضافي ضمیر دی.
ستار [1] (sitār) نر.م. مو. سیتار، سېتار، سه تار، تنبور او سرود ته ورته د موسیقۍ یوه آله ده.
ستار [2] (satār) ص. نر.م. پټوونکی، پرده پوښ؛ د لوی څښتن له صفتونو څخه یو صفت دی.
ستاره (sitāra) ښځ.م. سام، هیبت، وېره.
ستاړه (stāṛa) ښځ.م. سوله، پخلا کېدنه.
ستاژ (stāž) نر.م. د عملي کار د زده کړې دوره.
ستاسو (stāsū) ض.ج. ستاسې، د ستاسو.
ستالب (stālab) نر.م. یو ډول بوټی دی.
ستانه (stāná) ص. نر. ښځ.م. ۱) روحاني، بزرګ، د روحاني کورنۍ غړی؛ ۲) ص.ج. پاته شوې، پاتې شوي، څنډېدلي.
ستاوندي (stāwandī) ښځ.ج. چنې او بې‌ځایه خبرې، اپلتې.

ستایل (stāyal) مص. مت. ۱) صفت کول، ستاینه کول، توصیفول؛ ۲) مج. بد اورد ویل.
ستایلی (stāyalay) ستایل شوی، د صفت موصوف.
ستاینلیک (stāyanlik) نر.م. تقدیرنامه، تحسین نامه.
ستاینوړ (stāyanwaṛ) ص. د ستاینې وړ.
ستاینوم (stāynūm) ا. صفت نوم، صفت، لقب.
ستاینومترنګ (stāynūmtaṛang) توصیفي ترنګ (ترکیب).
ستایوال (stāywāl) ص. نر.م. توصیف کوونکی، مداح، خطیب، ستایونکی.
ستایویی (stāywayay) ستاینوم، توصیفي کلیمه.
ستتیک (statik) نر.م. و.ګ. ښکلاپېژندنه.
ستخ (stax) ص. نر.م.ج. ستوخ، بدخونده خواړه.
ستدیوم (stedıyūm) نر.م. و.ګ. ستېډییم.
ستر [1] (stər) ص. نر.م.ج. ۱) لوی، غټ؛ ۲) پراخ؛ ۳) مشر؛ ۴) نر.م. تنکي، تېک، ځنې، شقیقه.
ستر [2] (satər) نر.م. پرده، پرده، حجاب.
ستراو (satrāw) نر.م. ۱) یو ډول مېوه لرونکې ونه ده؛ ۲) د مېوې شیره.
سترپاسوال (starpāswāl) نر.م. په پولیسو کې لوړه رتبه چې د عسکرۍ له سترجنرال سره برابر ده.
ستر توب (startōb) نر.م. سترتیا، لوی والی، پرتم.
سترجنرال (stərjanrāl) ا. سرلښکر، سپه سالار.
سترچاری (starčāray) ص. لوی چاری، ښاڅمن (مغرور).
سترچاري (starčāri) لوی چارې، ښاڅمني، غرور.
سترغلی (starğəlay) نر.م. ۱) د سترګو ګاتې؛ ۲) د سترګې کسې؛ ۴) د سترګې پرده.
ستر کوکو (stárkokō) نر.م. نسترن.

**سترګ ارتاو** (stargartāw) لیدارتاو ، چشم انداز.
**سترګبندي** (stárgbandī) ا. کوډي کوډ ګري ، چشمبندي.
**سترګبېجن** (stárgbejún) نر.م. هغه څه چې سترګې اخلي؛ هغه ښکلی یا راکښونکی شیز چې د خلکو پام ځان ته راکاږي.
**سترګ تورى** (stərgtóray) ص. نر.م. ۱) تور سترګی؛ ۲) دسترووړي کنایه.
**سترګ خوږي** (stərgxūẓi) ښځ.م. د سترګو ناروغي او درد.
**سترګ رپ** (stərgráp) نر.م. د سترګو د رپ هرمره لنده شیبه.
**سترګک** (stərgák) نر.م. چشمک ، دسترګو اشاره.
**سترګليد** (stərglíd) ا. د سترګو لید ، د سترګو نظر ، چشمدید.
**سترګلينه** (stərglína) ښځ.م. نظربازي ، کتنه.
**سترګن** (stərgán) ص. سترګور ، سترګي والا ، عینکي.
**سترګن کوکو** (stərgankōkó) نر.م. د نرګس ګل.
**سترګنلى** (stərgnaláy) نر.م. د سترګو کاسه ، د سترګو د ګاټو (مرغنبانه) ځای.
**سترګور** (stargawár) ص. نر.م. ۱) بینا؛ بصیر ، د نظر خاوند؛ ۲) مج. عالم ، پوه.
**سترګ وږى** (stərgwáẓay) ص. نر.م. سترووږی اروا وږی ، بدسولی ، حریص ، سرابلی.
**سترګه** (stárga) ښځ.م. د انسان و حیوان د لیدلو او کتلو عضو ، د باصرې غړی.
**سترګې** (stərgáy) ښځ.م. ۱) عینکې ، چشمې؛ ۲) د ژرندې د ښرخ چوټ؛ ۳) چوږ ، د دروازې لخک؛ ۴) د اوبو د چینې سوری؛ ۵) د هېر منتظر.

**سترګې پرلار** (stargeparlār) ص. څارو ، منتظر.
**سترګې تړل** (stargetaṛál) مص. مت. ړوند چرګ ، د ماشومانو یو ډول لوبه ده.
**سترګيز** (stargíz) نر.م. و ګ. سترګور.
**سترګي والا** (stargaywālá) و ګ. سترګن.
**سترمېږه** (starmeṛá) ص. ښه ځوان ، لوی مېږه.
**سترنج** (satránj) نر.م. شطرنج؛ یوه لوبه ده.
**سترنجي** (satranjí) ښځ.م. سترنجی ، دری ، یو ډول نخي فرش دی.
**ستروآخفا** (satruxfá) ښځ.م. (عس.) پټونه ، نبهاموبه ، د عیبونو ، عشت څخه د جزوتامونو ، وسلو د واقعي وضعیت پټول.
**سترونده** (satarwánda) ص. ښځ.م. مستوره ، سترمنه ، سراپرده (ښځه).
**ستروى** (starwáy) نر.م. د مېږوي حشره.
**ستروي** (starwí) ښځ.م. لویي ، لویوالی ، ... .
**ستره**[1] (satrá) نر.م. ۱) روی بند ، پوړنی ، تېکري؛ ۲) ص. ښځ.م. سرابرده ښځه؛ ۳) ښځ.م. په کښتۍ کې د څاروس د دربدو ځای.
**ستره**[2] (sutrá) ص. نب. پاک ، سپېڅلی.
**ستری** (satráy) ښځ.م. ۱) کوده ، ګېډی؛ ۲) دانسان یا څاروي شوېدلی پوست.
**ستړېدل** (staredál) مص. ل. لوېدل ، غتېدل.
**ستړي وتړي** (sa rīwatrī) ص. نب. ۱) ستړی ستومانه؛ ۲) یوه کوروني چې تول د ناروغی په بستر کې پراته وي.
**ستړى** (s taṛay) ص. نر.م. ستومانه ، خسته.
**ستړيا** (staṛyá) ښځ.م. ستوماني ، ستړتیا ، نا ناآرامي ، خستګي.
**ستړېدل** (staṛedál) مص.ل. ستومانېدل ، ستړی کېدل ، خسته کېدل

**ستړی ستومانه** (starasystomā́na) ص. نـر.م. ډېر ستړی، سخت ستومانه، تو کړتو کړ.

**ستړي مشي** (stạrimaṣ̌i) ښـځ.م. ښـه راغلی، هر کلی، د حال احوال پوښتنه.

**ستغ** (stağ) ص.نـر.م. ۱) و ګ. ستخ؛ ۲) زیـږ؛ ۳) شخ، سم؛ ٤) په غره کې نبغه ختلې لاره.

**ستغه** (stáğa) ص. ښځ.م. سخته خبره، بده خبره.

**ستګ** (stag) نر.م. سنجاق، ستنګ.

**ستل** (satál) نر.م. ۱) بالټې، سطل، د اوبه د ساتلو یا انتقالولو لوښی؛ ۲) مص. مت. هوارول.

**ستلی** (satálay) مف. نر.م. هوار کړی، اوار کړی.

**ستم**[۱] (sitám) نر.م. ظلم، تېری، زیاتی.

**ستم**[۲] (stam) نر.م. ستام، ستما، ستمهار، ستمی، نپسک، سپله هار، تیګا.

**ستما** (stamā́) ښځ.م. ستم، ستمی، نپسک.

**ستمن**[۱] (satmán) نـر.م. ۱) مېلـمه پـال، مېلمه پالونکی؛ ۲) باناموسه.

**ستمن**[۲] (stamán) نر.م. ۱) یو ډول تریخ بوټی دی ۲) ص.نر.م. شته من، بډای، دنیا دار.

**ستمهار** (stamahā́r) نر.م. د ستمي اواز، د هنجي وهلو اواز، ستمېدنه.

**ستمېدل** (stamedə́l) مص.ل. سالنډه لنډه کېدل، ستمی کېدل، په ستمي کېدل.

**ستن** (stan) ښځ.م. ۱) یوه نری وړه فلزي آله ده چې کالي ورباندې ګنډل کېږي؛ ۲) و ګ. پېچکاري ۳) پایه، متهه، ستون؛ ٤) بمبیرکه؛ ٥) نر.م. د لمنځي، ارچې او نښتر د ونې پاڼه (بلګ).

**ستناو** (stanā́w) نـر.م. مانع، خنډ، خنډوونکی، ټالوونکی.

**ستناوه** (stanā́wa) ښځ.م. د مشرتوب او شـرافت حق لرنه.

**ستنبه** (stanbá) ص. نـر.م. پېچکاري کـوونکی، ستنه لګوونکی، رګوهونکی.

**ستن بوټی** (stanbū́ṭay) نر.م. یو ډول واښه دي.

**ستنځی** (stanǰáy) نر.م. اډځی، اډتون، توقیفځی، زندان، بندیخانه، جهل.

**ستن ستنکی** (stanstankáy) نـر.م. سستنکی، سل پاڼی، ببرکوکو، صدبرګ ګل.

**ستنک** (stanák) نر.م. و ګ. ستک.

**ستنکی** (stankáy) اا. سنجاق، ستک.

**ستنول** (stanawə́l) مص.مت ۱) ګرځول، راګرځول؛ ۲) ایسارول، ځنډول، منع کول.

**ستن وهنه** (stanwahə́na) پېچکاري، خالکوبي، تزریق.

**ستنه** (staná) ښـځ.م. ۱) په شا تلنه، بېرته تلنه؛ ۲) و ګ. ستن.

**ستنېدل** (stanedə́l) مص.ل. ۱) بېرته راګرځېدل؛ ۲) منع کېدل، ځنډېدل، معطلېدل.

**ستو** (satū́) نر.م. ستوان، تلخان.

**ستو** (staw) نر.م. کوچنی سـوری، تنګه، تېوزه.

**ستو** (satáw) نر.م. یو ډول شیدي لرونکې خړ رنګې ګیاه ده.

**ستوان** (satwā́n) نـر.م. تلخان، د وچو توتو تک وهلې میده ته تلخان یا ستوان وایي.

**ستوخ** (stūx) ص. نر.م. و ګ. ستخ.

**ستوخی** (stū́xay) نـر.م. تـم، سـتمی، نفسک، تګو، ستام.

**ستودګی** (studgáy) ښـځ.م. یو ډول مربع شکله شپاړس خنډیز نقش دی چې د تغرونو په اوبدلو کې اچول کېږي.

**ستور** (stor) نر.م ۱) د کوترې هومره یوه توره مرغۍ ده؛ ۲) غټ ښاروي، ستر بوده ګان، لکه: اس.

**ستوربېرى** (storberáy) ا. فضايي بېرى، تشيال بېړى.
**ستورپکى** (storpakáy) ښځ.م. يو ډول نقش دى چې د کب وزر ته ورته دى.
**ستورپوه** (storpóh) ص. نر.م. ستوري پېژندونکى، ستور پېژاند، هينت پوه، منجم.
**ستورپوهاند** (storpohánd) ا. وګ. ستورپوه.
**ستورګى** (storgáy) ا. ووکى ستورى، ستوري ډوله (*) ليکنښه.
**ستوروين** (storwín) ص. ستوري ليدونکى، نجومي، ستورپوه.
**ستورى** (stóray) نر.م (ج. ستوري) ستاره، ستبرى، هر اسماني جرم يا جسم لکه سياره، شهاب ثاقب، ذوات الاذناب، سپوږمۍ او نور.
**ستورۍ** (stūráy) ښځ.م. ګوڅى، مرخېړى، يو ډول غرنۍ پوڅکۍ ده.
**ستورين** (storín) ص. د ستوري اړوند، ستوريز.
**ستوريونى** (storyū́nay) ا. ستورمزلى، ستور ګرځى.
**ستوغ** (stuğ) ص. نر.م.ج. سخت، ستغ، ستخ.
**ستوغه** (stū́ğa) ص. ښځ.م. سخته، ستغه، زښته، بده (خبره).
**ستوکل** (stokál) نر.م. بدنيته، ناغېړه (سړى)، شرير و ناراسته.
**ستوګه** (stóga) ښځ.م. سکونت، استوګنه.
**ستول** (satawál) مص. مت. کمول، ټيټول، سپکول، کښېنول، غلى کول، ارامول.
**ستولى** (satawálay) مف. نر.م. غلى کړى، کرار کړى، آرام کړى.
**ستومانتيا** (stomāntyá) ښځ.م. ستړيا، ستړتيا، ستوماني (وګ. ستړيا).
**ستومانول** (stomānawál) مص. مت. ستړى کول، خسته کول.
**ستومانه** (stomā́na) ص. نر.ښځ.م. ستړى، خسته، زيله.
**ستومانېدل** (stomānedál) مص.ل. ستړى کېدل، زيله کېدل، خسته کېدل.
**ستومى** (stū́may) نر.م. د ستنې سپم، د ستنې سوم، د ستنې سپمى.
**ستون**[1] (stūn) ص. نر.م. (ج. ستانه) بېرته ګرځېدلى، معطل، ايسار، پاتې شوى.
**ستون**[2] (sutū́n) نر.م. ۱) برخه، حصه؛ ۲) پايه، ستن، متهه؛ ۳) د سر تېرو ډله چې د حرکت په وخت کې پر يوه کرښه روان وي.
**ستونچه** (stūnčá) ښځ.م. لستونکى، آستينچه، هغه لستونى چې د ډوډۍ د پخولو په وخت کې يې په لاس کوي.
**ستونځ** (stūnj) ص. نر.م.ج. ۱) کلک، جګ؛ ۲) ګران، ورتېر، د غره څوکه.
**ستونځه** (stū́nja) ښځ.م. ستونزه، معضله، کړاو، کړاک، تکليف، زحمت، ربړ، پرابلم.
**ستونزاوارى** (stonzawā́ray) ص. مشکل هوارونکى، ربړه هوارونکى.
**ستونزمن** (stonzmán) ص. ستومانوونکى، ربړوونکى، ګران.
**ستونکى** (satū́nkay) نر.م. اواروونکى.
**ستون ليکنه** (sotonlikána) ا. کالم ليکنه، مقاله ليکنه.
**ستونول** (stunawál) مص. مت. معطلول، ستنول، راګرځول، بېرته راګرځول، ځنډول.
**ستونه** (stū́na) ښځ.م. رجوع، ګرځېده، ورستنېده.
**ستونى** (stū́nay) نر.م. حلق، مرى.

**ستونېدل** (stunedә́l) مص. ل. بېرته گرځېدل، رجوع کول. ستنېدل.

**ستونيز** (stūníz) ص. نر.م. ج. په ستوني پورې اړوند، د ستوني —ستونيز غږ.

**ستوني ستخ** (stunistáx) ق. ستوني سمع، ستوني ستاک، د شا پر تخته، شا پرځمکه.

**ستوونکی** (satawū́nkay) فا. نر.م. ارامونکی، غلی کوونکی، کموونکی.

**ستوه** (stáwa) ښځ.م. ۱) چاړه، پېش کوزه، ستووه؛ ۲) نر.م. ستومانه، خپه، خوابدی، بې وسه، ناتوان.

**ستوهېدل** (stohedә́l) مص.ل. خپه کېدل، زړبدی کېدل، زهیرېدل، په عذابېدل.

**ستوي** (stawí) ښځ.م. اب مرواري، د سترگو يو راز ناروغي ده.

**سته** (sta) نر.ج. ۱) شته، شتمني، دارايي، دولت؛ ۲) ف. شته، دي، د يوه شي د شته والي ښيي.

**ستهان** (sathā́n) ور. ستان، يوه لاحقه ده چې د ځاى، مملکت او هېواد مانا لري.

**سته تيک** (statík) نر.م. و.گ. ښکلا پېژندنه.

**ستي** (satí) ص.نب. ۱) سوی، کباب شوی؛ ۲) تا. ساتي، سوتي، د هندوانو يو رسم وچې هندي مېرمنې ځان هغه اور ته اچاوه چې د مېړه مړی به يې په کې سوځېده.

**ستی**(۱) (satáy) ښځ.م. ۱) و.گ. ستي؛ ۲) بي بي، مېرمن؛ ۳) هغه ښځه چې خپل سر د پلار په کاله کې سپين کړي.

**ستی**(۲) (stay) ښځ.ج. شاتره، يو ډول بوټی دی چې د دوا کار ور څخه اخلي.

**ستېدل** (satedә́l) مص.ل. راضي کېدل، خوشاله کېدل، پخلا کېدل.

**ستېزه** (stezá) ښځ.م. ۱) لوړه سطحه؛ ۲) د غره جگه سطحه.

**سټ** (saṭ) ص. نر.م.ج. ۱) تباه، برباد؛ ۲) د پښو سندان؛ ۳) پخې مې؛ ۴) دلرگي هغه کونده چې سندان په کې ټينگېږي.

**سټار** (saṭā́r) نر.م. ستهور، يو ډول تېل دي چې د نښتر يا جنغوزي د ونې له ريښې څخه وېستل کېږي.

**سټاله** (saṭā́la) ښځ.م. ستل، تخمين، اټکل.

**سټ سمټ** (saṭsamáṭ) نر.م. بېکاره، نارسته، تمبل، لټ، تنبل.

**سټ سودا** (saṭsawdā́) ښځ.م. تخميني بيه.

**سټک** (saṭák) نر.م. سوټک، لوی چکوش.

**سټک** (sṭik) نر.م. و.گ. ستيک.

**سټکوري** (saṭkū́ray) نر.م. ۱) په تناره کې څڅېدلې ډوډۍ، چکيده؛ ۲) دنباتاتو پاتې شونې ښخ؛ ۳) بنسټ، آر؛ ۴) کور خرابی؛ ۵) مراوی، وچ شوی؛ ۶) سوکې، د اورسوکې.

**سټگی** (saṭgáy) نر.م. ۱) کوچنی سوټک؛ ۲) نښه، د ځلي په ځېر د لوټو ورکوټې نښه.

**سټمبېخ** (sṭambéx) نر.م. يو ډول نبات دی چې ښخ يې کچالو ته ورته دی.

**سټمتونی** (sṭamtū́nay) نر.م. ستماتونی، لرگي ماتوونکی.

**سټوپ** (sṭop) نر.م. ۱) بخاری، اوجاغ، اجاق؛ ۲) شتوپ، ايشتوپ، ايستوپ.

**سټ ورټ** (saṭwáṭ) ص. نر.م. تباه، برباد، پوپنا.

**سټوډيو** (sṭudiyó) ښځ.م. د راډيو او تلويزيون د پروگرامونو توليد او استولو لپاره ډيزاين شوې خونه.

**سټول** (saṭawә́l) مص. مت. ورکول، تباه کول، بربادول، له بېخه وېستل.

**سټه** (sáṭa) ښځ.م. بېخ، اساس، بنیاد، بنسټ.
**سټه ترنګ** (saṭataráng) ا. هغه ترکیب چې له يوه خپلواک ويي او يوې سټې رغېدلی وي.
**سټۍ** (saṭáy) ښځ.م. د چړې ښتنۍ، د تبر ځټ.
**سټي پټي** (saṭipaṭí) ص. نب. ۱) خامخا؛ ۲) ناحقه.
**سټېدل** (saṭedә́l) مص. ل. تباه کېدل، بربادېدل، ورک کېدل.
**سټېډییم** (sṭeḍiyám) نر.م. ستديوم، سټيډيم، ستوديوم، استديوم، لوبغالی، د لوبو د اجرا کولو ځای.
**سټېريوټايپ** (sṭeriyoṭā́yp) ص. نر.م. ۱) ط. کليشه، د چاپ تخته؛ ۲) سو. متحدالماله، يکنواخته کړه وړه يا سلوک.
**سټېريوفونيک** (sṭeriyofoník) ص. نر.م. ج. (بر.) د اواز د توليد يوه طريقه ده.
**سټېشن** (sṭešán) نر.م. ۱) تمځی، د درېدو ځای؛ (لکه د سرويسونو او رېلونو)؛ ۲) د راډيويي او تلويزيوني څپو د استولو او اخيستلو ځای.
**سټيک** (sṭik) نر.م. ۱) هغه لرګی چې نری او اوږد وي؛ ۲) د هاکي د لوبې لرګی.
**سټېنډرډ** (sṭenḍárḍ) سټېنډرډ، ستاندار؛ ۱) معيار، مقياس؛ ۲) پايه، بنسټ؛ ۳) بېلګه، نمونه.
**سجاپ** (sajā́p) نر.م ۱) اوږده ريتاړه ده چې د جامې څنډو ته يې ورګنډي؛ ۲) د رخچينې يا خولۍ هغه برخه چې پر کلکې پورې يې ورګنډي.
**سجره** (sajrá) ښځ.م. سرجه، د واورې کلکېدل.
**سجع** (sájsa) ښځ.م. مقفی کلام، قافيه لرونکې خبره، د نثر قافيه.
**سجل** (sijíl) نر.م. ۱) اقرارليک، د احکامو او عهدونو کتاب؛ ۲) پېژند پاڼه.
**سجيه** (sajiyá) ښځ.م. خوی، طبيعت، خُلق.

**سچ** (sač) ص. نر.م. ۱) خالص، نېږه، نوږه، سوچه؛ ۲) تول، ګرده سره.
**سڅ** (sac) ص. نر.م. ج. ګڼ، ګوړ، ببر.
**سڅه** (sacá) ښځ.م. سکره، د مزري بېخ، د مزري د بېخ غوټه، د مزري ډاک.
**سحر** (sihár) نر.م. جادو، افسون، کوډې.
**سحرامېز** (sihraméz) ق. له سحره ډک، جادو ډوله، له افسون سره مل.
**سحرګاه** (sahargā́h) نر. ښځ.م. سهار مهال، سهار ګيبځ، ګهيځ.
**سخ** (sax) نر.م. ۱) بخت، طالع، خوښي، نېکمرغي؛ ۲) ښهانه ۳) اد. شاباس، ډېر اعلی، ډېر ښه.
**سخا**(۱) (saxā́) ښځ.م. ۱) بخشش، خير، ورکړه، سخاوت؛ ۲) څښا، د پښو خفيف اواز.
**سخا**(۲) (sxā) ص. نب. خوسا، بوېناک، ګنده او بدبويه، متعفن.
**سخات**(۱) (sxāt) نر.م. سکات، اسقاط.
**سخات**(۲) (saxā́t) نر.م. فاتحه، دعا.
**سخاټه** (sxā́ṭa) ص. ښځ.م. غټه پيټه پزه، شلمه پزه، پلنه پزه.
**سخارېل** (sxārél) نر.م. څرکری، روڼش، پښې.
**سخاوت** (saxāwát) نر.م. ۱) کرم لرنه، بخشش لرنه، ځوانمردي، خيراتونه، خيرات.
**سخاوزه** (sxāwzá) ښځ.م. خساوږه، خساوزه، د بدغږ مانع دوا، د زنبق د ګل ريښه.
**سخت** (saxt) ص. نر.م. ج. ۱) مضبوط، ټينګ، کلک؛ ۲) ګران، مشکل؛ ۳) مج. کنجوس.
**سختاړ** (saxtā́ṛ) نر.م. ۱) بټه وريجې؛ ۲) يو ډول لښتی ده؛ ۳) هر نرم او اوبلن ګډ څيز.
**سختاړول** (saxtaṛawә́l) مص. مت. لښتی کول، اوبلنول، ګډ ګډ ډېر او اوبلنول، خوږېنول.

**سختاړېدل** (saxtaṛedə́l) مص.ل. لېټي کېدل، اوبلښېدل، خوړينېدل، ګوګاډېرېدل، سخاړېدل.

**سخت دريځی** (saxtdaríẓay) ص. د سخت (سياسي) دريځ او موقف خاوند، توند لاری.

**سخت دله** (saxtdíla) ص. نب. سخت زړی، په زړه سخت، بې عاطفې.

**سخت سری** (saxtsáray) ص. نر.م. سخت سر، کلک، ټينګ، سخت.

**سخت سپارو** (saxtsepārū́) نر.م. د ملا د درد يو ډول دوا ده.

**سخت ګير** (saxtgír) ص. نر.م. ۱) جدي، دقيق، څېړيونکی؛ ۲) مشکل تراش.

**سخت مزاجه** (saxtmizā́jha) ص. نب. سخت طبيعته، عصباني، خوشکتي، توند، تاوکی.

**سختوالی** (saxtwā́lay) نر.م. ۱) کلکوالی، ټينګوالی؛ ۲) مشکلتوب؛ ۳) ممسکي.

**سختول** (saxtawə́l) مص.مت. ۱) کلکول، ټينګول؛ ۲) مشکلول؛ ۳) تېزول.

**ښخته** (ṣáxta) ښځ.م. ۱) محروميت، مظلوميت، کړاو؛ ۲) ډېر، زښته، زښت، بې جوړې.

**سختيا** (saxtyá) ښځ.م. ۱) تنګسه، خواري؛ ۲) سختي، ممسکي.

**سختېدل** (saxtedə́l) مص.ل. ۱) کلکېدل، ټينګېدل؛ ۲) مشکل کېدل؛ ۳) ممسک کېدل؛ ٤) تېزېدل.

**سخر** (sxar) نر.م. ۱) خسر، د مايني پلار، د مېړه پلار؛ ۲) ببر سر؛ ۳) تېره کاڼې، چوری، چير؛ ۲) انجرينجر، ګډوډ، پېچل شوی شی.

**سخرګنی** (sxarganə́y) ښځ.م. د خسر کورنۍ، خسرګنی، خسرخېل.

**سخره** (sxára) ښځ.م. د ينګې کشولو پړی.

**سخره غوټه** (sxaragū́ṭa) ښځ.م. سخره ګنډه، ګډه وډه شوې غوټه، رنده غوټه.

**سخری** (sxaráy) ص. نر.م. ټينګ، ثابت.

**سخره** (saxrá) ښځ.م. يو راز غرنی بوټی دی.

**سخره**[1] (saxrá) ښځ.م. ۱) اومه نطفه، اوم جنين؛ ۲) د چارې رسۍ؛ ۳) مبله، چړچې.

**سخره**[2] (sxára) ښځ.م. ۱) تړ، د ويالې يا کاريز د کېندلو عمله؛ ۲) سربوندي، ورلګينه.

**سخکوره** (saxkóra) ښځ.م. دوه سرې ترښځ.

**سخن** (saxán) ص. نر.م. طالعمن، نېکمرغه.

**سخواړ** (sxwāṛ) نر.م. پلنه پزه، پيته پزه، چيته پزه.

**سخوبی** (sxubáy) نر.م. ډبلی، زبونه.

**سخوټ** (sxūṭ) نر.م. ۱) ګردی زخن لرګی؛ ۲) منډلی او ټيټ چاغ سړی.

**سخوټن** (sxuṭán) نر.م. توده ايره، پرندی، سخوتن، سخوختن.

**سخور** (saxawár) نر.م. نېکمرغه، بختور.

**سخوريز** (sxuríz) نر.م. پښې ته ورته يو ډول بوټی دی.

**سخوريی** (sxwaryáy) نر.م. د سخوريز، د بوټي بېخ.

**سخوښتی** (sxwaṣtáy) نر.م. ۱) د خولې کنج؛ ۲) ماکو.

**سخول** (sxwal) نر.م. تلفظ.

**سخوندر** (sxwandár) نر. ښځ.م. سخندر، سخوندر، ځوان غويی، ځوان خوسکی.

**سخه** (sáxa) ښځ.م. کينه، رخه، حسد.

**سخهار** (saxahā́r) نر.ج. د مال د سړمو اواز.

**سخی** (saxáy) نر.م. ۱) و ګ. سړی؛ ۲) خوسی، خوسکی؛ ۳) د يوې لوبې نوم دی.

**سخي** (saxí) ص. نب. دسخا څښتن، ښندونکی، بخښونکی، لاس خلاصی.

**سد** (sad) نر.م. ۱) هوښ، عقل، شعور؛ ۲) دېوال، خنډ؛ ۳) د رخ مقابل، د توپک په میل کې تاو راتاو دېوال.

**سدره** (sádra) ښځ.م. قلنګ، شکرانه، جاري خیرات.

**سدرۍ** (saxráy) ښځ. م. واسکټ، ټټرۍ.

**سدکاو** (sadkáw) نر.م. اسهال، چړنتوب، حیضه، له نسه ایله کېدنه، سرن.

**سدوبد** (sadubád) نر.م. عقل وهوښ، عقل و فکر.

**سدول** (sadwál) نر.م. لنډ قدی سړی.

**سدۍ** (sadáy) ښځ.م. پېړۍ، قرن، د سلو کالو موده.

**سډول** (saḍúl) نر.م. ۱) زوړ ډنګر غویی؛ ۲) مج. جاهل، تنبل و پنډ سړی.

**سر**[1] (sar) نر.م. ۱) ککرۍ، کوپړۍ، جمجمه؛ ۲) څوکه، قله؛ ٤) اساس، منشأ؛ ۵) مشر، د سرسړی؛ ٦) مخته، مخکې؛ ۷) شروع، پیل؛ ۸) سورجه، کلکه شوې واوره.

**سر**[2] (sir) نر.م. ۱) راز، پټه خبره؛ ۲) قلب، زړه؛ ۲) پټ، د علانیت ضد.

**سُر**[3] (sur) نر.م. ۱) مو. سور، سُرت، ټیپ، آهنګ، میلوډي، نغمه، ټون؛ ۲) مج. هوښ، شعور؛ ۳) مج. مهارت، استعداد؛ ٤) واک، اختیار.

**سراب** (saráb) نر.م ۱) سرورخې؛ ۲) و ګ. څلوېښ[2]؛ ۲) ع. له نرۍ او د نرۍ له متاع څخه کنایه.

**سراج**[1] (saráj) نر.م. څېن جوړونکی او خرڅوونکی.

**سراج**[2] (sɪráj) نر.م. ۱) څراغ، ډېوه؛ ۲) لمر.

**سراج الاخبار** (sɪrājulaxbár) د یوې جریدې نوم و چې د امیر حبیب الله خان د سلطنت پر دور د محمود طرزي په لیکوالۍ چلېدله.

**سراج الاطفال** (sɪrājulatfál) نر.م.د یوې جریدې نوم و چې د امیر حبیب الله خان په زمانه کې د محمود بېګ طرزي په لیکوالۍ خپرېده.

**سراجه** (sarája) ښځ.م. هغه خنډ (زخه، غوټه) چې د تاک په څانګو باندې کېږي.

**سراجي** (sarají) ښځ.م. د څېن جوړولو کسب.

**سراچه** (saráča) ښځ.م. ۱) وړوکی سرای، د کور دننه وړه او ځانته ابادي؛ ۲) هغه خونه چې د کور د دروازې یا ګاراج په سر جوړه شوې وي.

**سرارو** (sarāró) نر.م. شریان، د لاس غټ رګ.

**سراسر** (sarāsár) ق. ټول، له یوه سره تر بله پورې، سر تر پایه.

**سراسوتي** (saraswatí) ښځ.م.و ګ. سرسوتي.

**سراښ** (srāṣ) ص.نر.م. حریص، لالچي.

**سراښند** (srāṣánd) ص. نر.م. حریص، سراهند، نه مړېدونکی.

**سراښول** (srāṣawál) مص. مت. سراښ کول، ټینګول، تحریص و ترغیبول.

**سراښېدل** (srāṣedál) مص. ل. حریصېدل، ترغیبېدل.

**سراغ** (surāǵ) نر.م. نښه، نخښه، د یو چا د ځای پوښتنه.

**سرافراز** (sarafráz) ص.نر.م. سرلوړی، مفتخر.

**سرامني** (srāmaní) ښځ.م. زوه، د زخم اوبه چې څه وینه هم ورسره وي.

**سرانداز** (sarandáz) نر.م. ۱) اوږده قالینچه ده چې د توشکې په مخ اچوله کېږي؛ ۲) ص. نر. م. چټک، چالاک؛ ۳) بې پروا، بېباکه.

**سرانه** (saraná) ښځ.م. ۱) هغه لرګی چې د دروازې په سر اچول کېږي؛ ۲) د سړي په سر پیسې ټولول.

**سراو** (saráw) ص.نر.م. په سر کې، لومړی، له تولو وړاندې او به کول.

**سراوره** (saraóra) ښځ.م. هغه خواړه چې په اوومه ورځ یې په ناوې پسې وروړي.

**سراوړه** (srā́wṛa) ښځ.م ۱) گنه گونه؛ ۲) د کوچنیانو یو ډول لوبه.

**سرای** (srāy) نر.م. ۱) کور، انگړ؛ ۲) هغه ډېرې کوټې یا دوکانونه چې په یوه محوطه کې وي.

**سرایت** (sarāyát) نر.م. ۱) اثر، اغېزه؛ ۲) د یوه شي له توکو څخه د بل شي تېرېدنه.

**سراېږد** (saréẓd) نر.م. بالښت.

**سرایستلی** (sarıstálay) ص. وتلی، پېژندلی، مخور، نوموړ، نومړی.

**سراېښی** (sarıéṣay) نر.م. سروېږدی، بالښت.

**سرب** (srab) نر.ج. ۱) سوربخن، سرمنه؛ ۲) و.گ. سرپ ٤)؛ ۳) چاره، علاج.

**سربادي** (sarbādí) ښځ.م. هغه لېونتوب چې په سپور خوري څخه پیدا کېږي.

**سربادی** (sarbādáy) ص. نر.م. لېونی، چټی، غړېدونکی، چټیاټ ویونکی.

**سرباز** (sarbā́z) نر.م. عسکر، سرتېر، سرتېری، سرښندونکی.

**سربانده** (sarbā́nda) ښځ.م. ۱) سپرغېړی، د پټي سرالال، غړی؛ ۲) هغه ورکوټی پټی چې د غټ پټي سرته پروت وي.

**سربانډی** (sarbā́nday) نر.م. سرباری، له عادي حالته پورته، سربندي، سرمندیل، سرماتی، د ډېوال وروستی پخسه.

**سربانډه** (sarbā́ṇḍa) ښځ.م. بدریزه، سربانډی، هغه خرمنه چې په جغ پورې تړل کېږي او بیا د سپارې غشی ورباندې کلکېږي، سربانه.

**سربدال** (sarbadā́l) نر.م. سرگنگسه، گیچ، بېحاله.

**سربدل** (sarbadál) نر.م. جار، قربان، واری، څار.

**سربډاگه** (sarbaḍā́ga) ص. نب. ۱) بې پرو، لچه، لنډغر، ابله گرده؛ ۲) بېحیایه لگښت.

**سربر** (sarbár) نر.م. ۱) څانگې پرېکول، ښاخ برې؛ ۲) ق. تول، برابر، یو شانته، پوره، سرپه‌سر.

**سربرا** (sarbarā́) ص. نر.م. ۱) سم، برابر، منظم؛ ۲) د کار پای؛ ۳) نامي، د سر (سری).

**سربل** (sarbál) ا. مخینه، سابقه.

**سربنا** (sarbınā́) ا. مخبنا، روبنا.

**سربند** (sarbánd) نر.م ۱) د ویالې سربند؛ ۲) هغه نری پړی چې کوری، ترنگړ او... ورباندې اوبدل کېږي؛ ۳) مبله، بانډه، اېلبند.

**سربندی** (sarbandáy) نر.م. سرمندیل، سرماتی، د ډېوال وروستی مایله پخسه.

**سربندي** (sarbandí) ښځ.م. د جنگی لاس نیوی، نامزادي، کوژده.

**سربونی** (sarbū́nay) نر.م. نولی، خربوزی، سوربونی.

**سربه**[1] (sarbá) ص. ښځ.م. څربه، چاغه، غوټه.

**سربه**[2] (srabá) ښځ.م. ۱) مرداره، لاش، مېرزگه؛ ۲) سربله، قصابي شوی؛ ۳) غوښه.

**سربېړن** (sarberán) ق. پاسف. پورتنی، پړسن.

**سربېره** (sarbéra) ق. علاوه، د پاسه، پورته، برعلاوه، زیاتی.

**سربېښت** (sarbéṣt) نر.م. سرسینه، سرېښتی، سرېښتی.

**سربیه** (sarbaya) ښځ.م. د سر په قیمت، د سر بیه.

**سرپ**[1] (srap) نر.م. ۱) سرب، سرپ، یو ډول فلز دی؛ ۲) یو غرنی ونه ده؛ ۳) په لومه کې د مرغۍ د وزر وهلو اواز.

سرپ(۲) (sırp) اد. صرف، فقط، گوبلې، محض.
سرپاړی (sarpā́ẓay) نر.م. سرپاغی، د سر و مخ د ډډېدو او پرسېدو یو ډول ناروغي ده.
سرپټه (sarpáṭa) ص. ښځ.م. باکره او سترمنه.
سرپټی (sarpáṭay) ص. سرپوښلی، هغه چې سر یې پټ وي.
سرپرست (sarparást) نر.م ۱) مربي، روزونکی، پالونکی؛ ۲) اداره کوونکی، موقتي مشر.
سرپری (sarparáy) نر.م. د ساچ په څېر یو ډول مرغۍ ده چې وزرونه یې سره او نور تور دي.
سرپرېکړی (sarprekāṛay) ص. نر.م. ۱) سر قربان کړی، توریالی، سرپرې؛ ۲) کټ مټ.
سرپرېکول (sarprekawál) مص. مت. ۱) سر غوڅول، وژل؛ ۲) پ. ک. لوړه کول.
سرپړکمشر (sarpaṛkmášar) نر.م. بریدگی، یوه عسکري رتبه ده.
سرپښتۍ (sarpaṣtáy) ښځ.م. سرسینه، نازکې تنکۍ پښتۍ.
سرپک (sarpák) نر.م. سرسرۍ، هسې، سطحي.
سرپناه (sarpanā́h) ښځ.م. ۱) کور، خونه، منزل؛ ۲) کوډله، جونګړه.
سرپوټکه (sarpuṭáka) ښځ.م. سپېرکونډکه، کوچنۍ مرغۍ ده چې په سر باندې پوپکه لري.
سرپوټه (sarpū́ṭa) ښځ.م. و گ. سرپټه.
سرپوړی (sarpóṛay) ص. نر.م. و گ. سرلوړی.
سرپوښ (sarpóṣ) نر.م. ۱) سرپوټی، برغولی؛ ۲) یوولس ډزې ټوپک.
سرپوښلی (sarpoṣálay) ص. نر.م. پوښلی، سرپټ شوی، پټ.
سرپول (sarpawál) مص. مت. مرغۍ بېرول، مرغه د وزرو په رپولو راوستل.

سرپه څېری (sarpaceṛáy) ق. سرپه چېری، سرپرڅېری، سرپه څنګه، سرپه څونکه.
سرپه سر (sarpasár) نر.م. ۱) یو شان، یو برابر، مساوي؛ ۲) پرتله.
سرپېدل (srapedál) مص. ل. په لومه کې د مرغۍ د بندېدو په وخت کې د وزرونو وهل کېدل.
سرپین (surpín) ص. نر.م. ۱) سرپې، سرپې، د سرپوجوړ؛ ۲) سرپې توپک.
سرتا (sartá) ښځ.م. د ښځو د پوړني شا وخوا گنډل شوې وربښمینه توته.
سرتاو (sartā́w) نر.م. سرغړونه، سرکښي.
سرتاوول (sartawawál) مص. مت. سرغړول، سرکښي کول، ناپرماني کول.
سرترپایه (sartarpā́ya) ق. ترپایه، ټول، تمام، له اوله تر آخره.
سرتړلی (sartaṛálay) سرپټی، سرپټ، سربسته.
سرتړونی (sartaṛū́nay) نر.م. سرتونی، سرپېچک، کله چک، هغه دسمال چې سر پرې تړي.
سرتمبه (sartamba) ص. نب. و گ. سرتمبه.
سرترسره (sartarsára) ق. تول، سراسر، بالکل، له سره تر اخیره، کلاً، کاملاً.
سرتناو (sartanā́w) نر.م. مراند، د مېزانو د جال سرتناو.
سرتور (sartór) ص. نر.م. ج ۱) سرلوڅ، سرلوڅی؛ ۲) بې عزته، خوار، ذلیل.
سرتورول (sartorawál) مص. مت ۱) سرلوڅول؛ ۲) بې عزته کول، خوارول. سرتورونه.
سرتوره (sartóra) ص. ښځ.م. ۱) تور سرې، سر لوڅې (ښځه)؛ ۲) مج. کونډه.
سرتوري (sartorí) ښځ.م ۱) بې عزتي، سپکونه؛ ۲) کونډتوب.

**سرتورېدل** (sartoredál) مص.ل. ۱) بې عزته کېدل؛ ۲) کونډېدل، بې مېړه کېدل.

**سرتونی** (sartúṇay) نر.م.و گ. سرتړونی.

**سرتی** (saratáy) ص.نر.م. ترهور، سرگردان، وارختا.

**سرتېر** (sartér) ص. نر.م. ۱) زړور، جسور؛ ۲) فداکار، سرتېرېجانباز؛ ۳) عسکر.

**سرتېره** (sarterá) ص.نر.م. سرتېز، هغه څه چې سر یا څوکه یې تېره او تېزه وي.

**سرټمبگي** (sarṭambagí) ښځ.م. سرټمبگي، مخالفت، ضدیت، سرزوري.

**سرټمبه** (sarṭambá) ص. نب. سرټمبه، ضدي، مخالف، پر یوې بېځایې خبرې سخت ولاړ.

**سرټولنه** (sarṭolána) ا. ستره ټولنه، ستره غونډه، سراسري کنفرانس.

**سرټيټوالی** (sarṭiṭwā́lay) نر.م. خجالت، شرمندگي، بدنامي، سرکښته والی.

**سرټيټی** (sarṭíṭay) ص.نر.م ۱) اطاعت کوونکی، عاجز؛ ۲) خجل، شرمنده، بدنام.

**سرج** (sarj) نر.م. ځین، زین، د آس زین.

**سرجماعه** (sarjamāṣá) نر.م. سرجماعت، د ټولګي مشر، د صنف کپتان.

**سرجنښت** (sarjanáṣ̌t) نر.م. د کار او عمل لار.

**سرجه** (sarjá) ښځ.م. سورجه، سوجره.

**سرجي** (sarjí) نر.م. ځین جوړوونکی او خرڅوونکی.

**سرچشمه** (sarčašmá) ښځ.م. ۱) سرچینه، چینه، منبع

**سرچومه** (sarčúma) ښځ.م. ساچمه.

**سرچېړی** (sarčéṛay) ص. نر.م. نسکور.

**سرچينه** (sarčiná) ښځ.م. سرچشمه، منبع.

**سرځوړ** (sarǰwáṛ) ص. نر.م. ج. ځوړی، سرښکته، سرځوړ.

**سرځوړی** (sarǰwáṛay) ص. نر.م. ۱) سرځوړ، شهوه، سرکښته؛ ۲) سرټيټی؛ ۳) عاجز، بې ازاره؛ ٤) خجل.

**سرځوړي** (sarǰwaṛí) ښځ.م. سرځوړی، سرټيټي، سرخمي، سرڅوړي.

**سرځی** (sarǰáy) ق. مخکینی، وړاندینی (برخه).

**سرڅارمن** (sarcārmán) نر.م. د پولیس په تشکیل کې ترسمونیار راښکته رتبه ده چې د عسکری د جگتورن او ملکي ٦ رتبې سره برابره ده.

**سرڅارن** (sarcārán) ا. د پولیس افسر، د افغاني پولیس رتبه.

**سرڅپوڼی** (sarcapū́ṇay) ا. زړوکی، څکالکی، اوړنی، د سر دسمال.

**سرڅړی** (sarcáṛay) نر.م. یو ډول بوټی دی چې ډنډریې غټ او پاڼې یې نری دي.

**سرڅوړه** (sarcū́ṛa) ص.نب. ۱) سرځوړ، سرځوړی ۲) د وزن په موضوع کې د دروند مانا لري.

**سرڅوړی** (sarcū́ṛay) نر.م ۱) سرښکته، سرځوړی؛ ۲) مج. خجل، شرمنده.

**سرڅېړه** (sarcéṛa) ښځ.م. مخامخ، مستقیماً، نېغ په نېغ.

**سرڅېړی** (sarceṛáy) نر.م. سرڅوړی، سرښکته.

**سرحد** (sarhád) نر.م. برید، وېش، پوله، ټک، فاصل حد.

**سرحددار** (sarhaddā́r) ص.نر.م. برید ساتونکی، د سرحدي چارو مؤظف، د سرحد ساتلو آمر.

**سرحدي** (sarhadí) ص. نب. په سرحد پورې اړوند، د سرحدي سیمې اوسېدونکی.

**سرخاب** (surxā́b) نر.م. ۱) سریغ، سرخاوی، یو ډول هیلۍ ده؛ ۲) سرکی.

**سرخار** (sarxā́r) ص. نر.م. د اغزو بندیز (احاطه).

**سرخازه** (sarxāza) ښځ.م. خازه، د برلیک، د قبر شناخته.

**سرخان** (sarxā́n) نر.م. په ودونو او خیراتونو کې د کارونو پوره بند وبست کوونکی.

**سرخانه** (sarxānā́) ښځ.م. سری، سرکول، د چلم سرخانه، د چلم توپی.

**سرخانی** (sarxānáy) ښځ.م. د اوښانو طویله.

**سرخاوره** (sar xáwra) ښځ.م. د سر پر بمنځلو خاوره.

**سرخ باد** (surxbā́d) نر.م. سره مخه.

**سرخچه** (sarxčá́) ښځ.م.ج. ۱) یو ډول سره او تروه زردالو دي؛ ۲) یو ډول غنم.

**سرخرکه** (sarxaráka) ښځ.م. کله خورکه، یو ډول مرغی ده چې د کوچنیو مرغیو مازغه خوري.

**سرخروی** (surxrúy) ص.نر.م. مخ روښی، سرلوړی، سرهسکی.

**سرخرینه** (sarxrıyána) ښځ.م. سرکلونه، سرخرونه.

**سرخس** (sarxás) نر.م. یو ډول بوټی دی.

**سرخط** (sarxát) نر.م ۱) سرلیک، عنوان، سرنامه؛ ۲) سرمشق.

**سرخک** (sarxák) نر.م. یو ډول بوټی دی.

**سرخکان** (surxakā́n) نر.م. وګ. شری.

**سرخکه** (sarxáka) ښځ.م. یو ډول توره مرغی ده.

**سرخکی** (surxakáy) نر.م یو ډول بوټی دی چې په ریښو یې شیان رنګوي.

**سرخنی** (sarxanáy) نر.م. ځرخنی، هغه غوچکه چې د کچېري په منځ کې د کورتو او غوړیو د اچولو لپاره وبسته کېږي.

**سرخوړلی** (sarxwaṛálay) ص.نر.م. تباه شوی، هلاک شوی، مړ شوی.

**سرخوړوونکی** (sarxuẓawū́nkay) فا.نر.م. ستړی کوونکی، خپه کوونکی، شله، سرټمبه.

**سرخوړی**[1] (sarxwaẓáy) ص.نر.م. مزاحم، تکلیف ورکوونکی، جنجالي.

**سرخوړی**[2] (sarxūẓáy) نر.م. سرخوږېدنه، سردردي.

**سرخوش** (sarxóš) ص.نر.م. خوشال، مست.

**سرخول** (sarxól) نر.م. د خولی سر، کله ګی، د خولی توپی، تپکی.

**سرخوله** (sarxwála) ښځ.م. د خولی پیڅه، د خولی چنه، دخولی پراوېز.

**سرخه** (surxá́) ص.نب. ۱) سمند آس؛ ۲) ښکلی، سوربخن.

**سرخی** (surxáy) ښځ.م. ۱) غاړه، څنډه، ژی، حاشیه؛ ۲) تربشه، ریتاړه، لیتاړه.

**سرخېل** (sarxél) نر.م. مېږ، سرکرده، مشر.

**سردار** (sardā́r) ص.نر.م. ۱) مشر، سرکرده، رئیس؛ ۲) قوماندان، د پوځ ستر افسر.

**سردارو** (sardā́rū) نر.م.ج.وګ. پاره، اولنو به دغه ماده دحشراتو د ورک کولو لپاره په سرونو کې اچوله‌نو ځکه یې سر دارو بلله.

**سردانه** (sardānā́) ښځ.م. د سرورخ، هغه ورخ چې د ویالې په سرکې واقع وي.

**سردرختي** (sardraxtí) ښځ.م. د ونو مېوه، د مېوه دارو ونو حاصل.

**سردره** (sardará) ښځ.م. د درې سر، د درې لوړه برخه.

**سردری** (sardaráy) ښځ.م. د دروازې د چوکاټ پاسنی لرګی.

**سردسېر** (sardsér) ص.نر.م. سره سیمه، سوړ ځای.

**سردم** (sardám) نر.م. دجولا د تنستې ځانګړی آله (لرګی).

**سردمدار** (sardamdā́r) ص. نر.م. مشر، سرکرده، سرکښ.

**سرده** (sardá) ص. نب ۱) . د ول ختکی یا هندوانې یا...۲) یو ډول غرڅه.

**سررشته** (sarıštá) ښځ.م. و گ. سرښته.

**سرزګی** (sarzagáy) نر.م. سرجګی، هغه پوستکی چې د جګ په خوله یې اچوي او تړی یې.

**سرزنش** (sarzanáš) نر.م. ترټنه، په سرټکونه، ملامتونه، جزا ورکونګ.

**سرزوره** (sarzóra) ص. نب. سرکښه، سرکشه، سرتمبه، ضدي.

**سرزوری** (sarzóray) ص. و گ. سرزوره.

**سرزوري** (sarzorí) ا. سرتمبګي، زورورتیا، سرکښي.

**سرزیان** (sarzyā́n) ا. د سرزیان، د سر تاوان، ځاني تاوان.

**سرزېړی** (sarzeṛáy) نر.م. هغه لږ سره کړي غوړي چې په کورتو او یا کتغ باندې اچول کېږي.

**سرژه** (saržá) ښځ.م. و گ. سرږه.

**سرږه** (sarẓá) ښځ.م ۱) سرژه، غرني مېږه، غرخنی، د غره پسه؛ ۲) مج. تکړه او سرکښه ښځه.

**سرساتنمن** (sarsātanmán) نر.م. د پولیسو په تشکیل کې له دریم خارن څخه راښکته رتبه ده چې د عسکری په تشکیل کې د وړو ضابطانو له بریدګي سره برابره ده.

**سرسام** (sarsā́m) ص. نر.م.ج. سودایي، بادسری، سرکوته، بې اګاره، بادوهلی، باسار.

**سرسایه** (sarsāyá) ښځ.م. د فطر صدقه، د سر صدقه.

**سرسپارلی** (sarspārálay) ص. سرښندلی، ځانسپارلی، سر په تلي کې.

**سرسخت** (sarsáxt) ص. نر.م. ۱) کلک، ټینګ، ۲) سرتمبه، ج . ضدي.

**سرسر** (sarsár) نـ . ۱) د مایعاتو د سر برخه؛ ۲) د وریجو ... چې شوې اوبه؛ ۳) پېچونه.

**سرسره** (sarsará) ... ځ.م. د اوبښ ښایسته ترسهری، د اوبښ ښکلو ... سار (افسار).

**سرسری** (... saráy) نر.م. یو ډول پاسته او بې اغزو وابښه دی.

**سرسري** (sarsarí) ص. نب. برسېرن، سطحي، نیمګړی.

**سرسوبن** (sarsobán) ص. نر.م. وارخطا، تلولی.

**سرسوبنده** (sarsobánda) ښځ.م. زنځه، ځمڅه، زمڅه، شوبله، چهلپا (و گ. زنځه).

**سرسیانده** (sarsıyā́nda) ص. نب. تلولی، وارخطا.

**سرسېره** (sarséra) ښځ.م. د ښځو یو ډول ګانه ده چې په تندي یې ځړوند وي.

**سرشاخي** (saršāxí) ښځ.م. دخارو د سر مالیه، چپلک.

**سرشار** (saršā́r) ص. نر.م ۱) ډ ک، ترخولې پوره؛ ۲) مست، ارام، خوښ.

**سرشاهي** (saršāhí) ښځ.م. شېرشاهي؛ له ۱٤ . ګرامو سره معادل وزن.

**سرشکوونی** (saršikawū́nay) نر.م. سرشکونه، د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

**سرشمارنه** (saršmārána) ا. سرشمېره، سر شمېرنه، د نفوسو احصائیه.

**سرشمېراند** (saršmerā́nd) ا. سرشمېرونکی، سرګڼونکی، سرمحاسب.

**سرشوخ** (saršóx) ص. نر.م. شوخ طبعه، مست، په شوخۍ او شیطانۍ سر.

**سرشی** (saršáy) ښځ.م. یو ه بابښه ډوله مرغۍ ده.

**سرښاند** (sarṣánd) ص. سربهندونکی، سرشار.

**سرښته** (sarıştá) ښځ.م. سرشته، سررشته، بندوبست، سمبالونه.

**سرښته دار** (sarıştadár) ص.نر.م. سررشته دار، سمبالوونکی، بندوبست کوونکی.

**سرښوونکی** (sarṣoúnkay) ا. مشر ښوونکی، سرمعلم.

**سرطان** (saratán) نر.م. ۱) چونګاښ، چنګاښ، کجپوړ، کنیکبر؛ ۲) کېنسر.

**سرطبیب** (sartabíb) نر.م. د ډاکټرانو رئیس، د یوې روغتیايي موسسې آمر یا مشر.

**سرعت** (surṣát) نر.م. تندي، تلوار، بیړه، چټکتیا.

**سرغ** (sarğ) نر.م. ځین، زین، د آس زین.

**سرغاړی** (sarğáray) ص. نر.م. ۱) سرکښه، سرغړوونکی، سرکش،، غوړ نه نیوونکی؛ ۲) په تنګ شوی.

**سرغاړې** (sarğáre) ښځ.م. ژوبله، وژله، قتل.

**سرغبرګون** (sarğbargún) ګر. د فعلي ریښې د سرتوکي تکرار.

**سرغټ مشر** (sarğaṭmášar) نر.م. سپه سالار.

**سرغړاندی** (sarğaṛánday) ص. نر.م. یاغي، باغي، سرکښه، سرکش، سرغړوونکی.

**سرغړول** (sarğaṛawál) مص. مت. بغاوت کول، نافرماني کول، سرکښي کول، سرغړل.

**سرغړی** (sarğaṛáy) ص. نر.م. پزې ته رارسېدلی، ډېر په عذاب شوی.

**سرغشی** (sarğáṣay) نر.م. و ګ. شرغشی.

**سرغندوی** (sarğandóy) ص. نر.م. ۱) مشر، لارښود، لارښوونکی؛ ۲) یو ډول واښه دي.

**سرغنه** (sarğaná) ص. ښځ.م. مشر، لارښود، د سرسړی، لارښوونکی.

**سرغوپه** (sarğupá) ښځ.م. ۱) سرغوټه، غوټه؛ ۲) پټ، ډوب، نتلی.

**سرغوټه** (sarğúṭa) ښځ.م. ۱) پېچلی کار؛ ۲) د تار د سر غوټه؛ ۳) دوېښېدنه، غوټه کېدنه.

**سرغوچ** (sarğwáč) نر.م. سرغچ، مهر و لاک، سربسته، د مال نښاني کول.

**سرغوځ** (sarğwáć) ص. نر.م. سرپرېکړی، سر پرې شوی.

**سرغوړ** (sarğwaṛ) نر.م. د سر روغن، د سر غوړولو غوړي.

**سرغوږی** (sarğwáẓay) نر.م. د کاهو یا نورو سابو باندېنی پنډ یا غټ پوټکی.

**سرغونډ** (sarğwánḍ) ص. نر.م. ۱) غونډ سری، ګرد سری؛ ۲) ډډ بغوتۍ؛ د مرۍ یو ډول ناروغي ده؛ ۳) غځ، یو ډول اغزن بوټی دی.

**سرف** (sarf) نر.م. ج. په ځمکه پورې تړلی بزګر.

**سرفراز** (sarfiráz) ص. نر.م. سرلوړی، مفتخر.

**سرقت** (sırqát) نر.م. سرقه، غلا، پټ، ورک.

**سرکاتب** (sarkātíb) نر.م. سرلیکونکی، د لیکونکو مشر.

**سرکار** (sarkár) نر.م. ۱) حکومت، کارفرما؛ ۲) ملک، اختیار دار.

**سرکاري** (sarkārí) ص.نب. د سرکار، د حکومت، په حکومت اړوند.

**سرکپ** (sarkáp) نر.م. سرپک، په سر کې ریبدل، غنم یا ... ځلور ګوتې په سر کې ریبدل.

**سرکتابت** (sarkıtābát) نر.م. د سرکاتبۍ وظیفه، سرکاتبي.

**سرکټ** (sarkíṭ) نر.م. بر. و ګ. دوره ۲).

**سرکرده** (sarkardá) ص. نب. مشر، د سر سړی، آمر، حاکم.

**سرکړونې** (sarkṛúne) ښځ.م. مشاطه، د سر سینګاروونکې.

**سرکس** (sarkás) نر.م. د هنري او ورزشي ننداري لکه اکروباټ، جمناستیک، جادوګرۍ، د روږدو حیواناتو چالبو فعالیتونو ته سرکس وايي.

**سرکښ** (sarkáṣ) ص. نر.م. ۱) سرکش، یاغي، نافرمان؛ ۲) د اس ځل؛ ۳) د رمې د سر وزه، شابز.

**سرکښته** (sarkṣáta) ص. نب. سر ټیټی، سرځوړ، سرخم، سرځوړنده.

**سرکښي** (sarkaṣí) ښځ.م. سرکشي، یاغیتوب، سرزوري، بغاوت، خبره نه منل.

**سرکنده** (sarkánda) ص. ښځ.م. تېزه منډه، په یوه سا منډه، بې ځنډه منډه.

**سرکنډو** (sarkanḍó) ص.ښځ.م. و ګ. سرکونډو.

**سرکنډی** (sarkanḍáy) نر.م. د ماشوم نذري وېښتان او ځنکه.

**سرکنډۍ** (sarkunḍə́y) ښځ.م. ۱) هغه جنۍ چې وېښتان یې لنډ شوي؛ ۲) هغه نجلۍ چې مخکې له وده دوه پلار په کور کې کونډه شي.

**سرکو** (sarkáw) نر.م. و ګ. سرکپ.

**سرکوب** (sarkób) ص. نر.م. ۱) ترټل، سرزنش، وهل، ماتې ورکول؛ ۲) د جنګ څوکۍ، برج؛ ۳) دژرندې د ویالې جګ ځای.

**سرکوټ** (sarkóṭ) نر.م. د درمند هغه لوښی پیمانه چې ملا یا ډم ته ورکول کېږي.

**سرکودن** (sarkodán) ص.نر.م. و ګ. سرسام.

**سرکوزی** (sarkū́zay) نر.م. ۱) خنځیر، خنزیر، سوډر؛ ۲) ص.نر.م. مج. بې غیرته (سړی).

**سرکوزي** (sarkūzí) ښځ.م. بې غیرتي، دووسي، شرمندګي، بېشرمي.

**سرکول**[۱] (sarkól) نر.م ۱) سری، د چلم سرخانه؛ ۲) د اوبو پټیم، د اوبو مخې ته بند اچول.

**سرکول**[۲] (sarkwál) ق. سر په ځېږي، سرتوکونی، سر په ځنکه، سرکول کوني.

**سرکول**[۳] (sarkawál) مص. مت. ۱) سرمینځل، ګنډه کول او اوبدل؛ ۲) چلم لګول؛ ۳) غولول؛ ۴) د کړکي قلم جوړول؛ ۵) ننبه ختا کول.

**سرکولپي** (sarkulpí) ښځ.م. (اق.) سرقفلي، د تجارتي شهرت ارزښت، د یوې ځمکې، ځای، مسلک تفضیلي ګټې.

**سرکومه** (sarkomá) ښځ.م. د کاریز د څاه بام یا سرپټونی.

**سرکونډو** (sarkondó) ښځ.م. ۱) نوې بالغه نجلۍ چې وېښتان یې لنډ وي؛ ۲) ق. سرکونډۍ، سر په ځېږي اوښتل، سرتوکوني اوښتل.

**سرکونګ** (sarkwáng) نر.م. یو ډول مرغۍ ده چې د غاړې ښکې یې رنګارنګې دي.

**سرکوی** (sarkóy) نر.م. ګونډي مال، پرمال، د درمند د ګونډیو میده کول.

**سرکه** (sarká) ښځ.م. تروبې، یوه تروه مایع ده چې د انګورو، توتو، خرما او تخمر څخه جوړیږي.

**سرکۍ** (sarkáy) ښځ.م. ۱) مچ ته ورته د یوې سرې رنګې حشرې نوم؛ ۲) الوبالو، د الوبالو ونه؛ ۳) یو ډول جلدي ناروغي ده؛ ۴) ص.ښځ.م. سور رنګی.

**سرکی** (sarkáy) ص. نر.م. ۱) سور رنګه؛ ۲) برسېرن لګېدلی، سطحي منبتی.

**سرکېدل** (sarkedál) مص. ل. ۱) مقصد ته رسېدل؛ ۲) د چلم لګېدل؛ ۳) دانه چاودېدل.

**سرګا** (sargā́) ښځ.م. ۱) پرونی، تېکری؛ ۲) یو ډول د تغر ښکلی انځور دی.

**سرګردان** (sargardán) ص.نر.م. لالهانده، پریشان، غلبلانده، لالوانده، آواره.

**سرګړی** (sargáṛay) نر.م. یو ډول زیړ رنګه زیره غرني وابنه دي.

**سرګله** (sargalá) ښځ.م. تکسری، چپلک، د مال او ښارویو محصول.

**سرګنګس** (sargángs) ص. نر.م. سرګنسه، سر ګیچ، ګنګس، سربداله.

**سرګڼی** (sargaṇáy) نر.م. یو ډول زیړ بوټی دی.

**سرګومه** (sargúma) ص. نب. ۱) سرګمه، بیهوښه، بیحاله؛ ۲) نامعلومه.

**سرګه** (sargá) ښځ.م. د کور کمبله.

**سرګیجن** (sargeján) ص. نر.م. څوک چې د ګوشت خورۍ په ناروغۍ اخته وي.

**سرلاټی** (sarlāṭáy) ښځ.م. ۱) سرملاق، سر په ځمکې، سرکونډی؛ ۲) د سرچوټي.

**سرلوځ** (sarlúc) ص. نر.م. سرلڅی، سرلوڅه، لوڅ سری، تور سری، تورسره.

**سرلوړتوب** (sarlwaṛtób) نر.م. سرلوړي، سربلندي، سرلوړتیا، سرلويي، سرلوړوالی.

**سرلوړه** (sarlwáṛa) ښځ.م. پیچومی، مخ په لوړه.

**سرلوړی** (sarlwaṛáy) ص.نر.م. سربلند، سرفرازه.

**سرله سره** (sarlasára) ق. له سره، د لومړي سره، بیا، دوباره.

**سرماتوک** (sarmātúk) ص. نر.م. ښاخوړی، سرماتک، جنګړه، جنګي.

**سرماتول** (sarmātawál) مص. مت. ۱) سرزخمي کول؛ ۲) سرابنتیا کول؛ ۳) تول غوړول.

**سرماتی** (sarmā́tay) ص.نر.م. ۱) سرماتوک، جنګړه؛ ۲) سربندي، سرمنډیل؛ ۳) د ښپای پزه ۴) غوړ تول، سرشپوه تول.

**سرماتي** (sarmāti) ښځ.م ۱) جنګ جګړه، جنجال ۲) غوړه تلنه، سرشپوه تلنه.

**سرمال** (sarmā́l) نر.م. ۱) هغه پړی چې یو بار د باروړونکي په شا ټینګیږي؛ ۲) ص. ډ ک؛ ۳) دګونډي مېده کول.

**سرمالول** (sarmālawál) مص. مت. ۱) پرمالول، ګونډي مېده کول، ګنډي غوېلول؛ ۲) ډکول، مالامالول.

**سرمالي** (sarmālí) ښځ.م. ډکوالی، مالامال تیا.

**سرمامور** (sarmāmúr) نر.م. د پولیس د ماموریت آمر.

**سرمایه** (sarmāyá) ښځ.م. پانګه، شته، ذخیره، دارايي، دولت، ټول شوی مال.

**سرمایه دار** (sarmāyadā́r) ص.نر.م. د پانګې څښتن، شتمن، موړ، بډای، دولتمن.

**سرمرد** (sarmard) ښځ.م. هغه پیسه چې څوک خپل عوض ته د اجورې په توګه ورکوي.

**سرمرده** (sarmardá) ښځ.م. تر، هغه اشر چې د ویالې کیندلو یا جوړولو لپاره ټاکل شوی وي.

**سرمشریزه** (sarmasrza) ا. سرټولنه، سرمشریزه غونډه، د هیواد خپلمنځې غونډه.

**سرمشق** (sarmā́šq) نر.م ۱) نمونه، عبرت، مثال، ډول؛ ۲) سرخط.

**سرمښکی** (sarmaṣkáy) ښځ.م. شرموښکی، چړ ښکی؛ [illegible] کوچنی خزنده ده.

**سرمعلم** (sarmaṣlím) نر.م. سرښوونکی، د ښوونکو آمر.

**سرمغزن** (sarmağzán) ص. نر.م ۱) اپلتي ویونکی، چتي غږېدونکی؛ ۲) سرګیږنی، ګیچ.

**سرمغزنتوب** (sarmağzantób) نر.م. ګنګسیت، ګنګس توب، سرګرځنتوب، ګیچوالی.

**سرمغزنول** ( sarmağzanawә́l ) مص. مت. سر گېډنی کول، سرگیچول، د ډېرو خبرو په وسیله سره د چا سرګنګسول.

**سرمغزنېدل** ( sarmağzanedә́l ) مص. ل. د ډېرو خبرو په اورېدو ګنګسېدل، سرګرزنی کېدل، ګیچېدل.

**سرمقاله** ( sarmaqālá ) ښځ.م. ژ. هغه مقاله چې د ورځنیو پېښو په اړه د مسوولو کسانو له خوا په یوه ورځپاڼه، مجله... کې لیکل کېږي.

**سرمنډول** ( sarmanḍól ) ص.نر.م.ج. سر په ځمکه ولاړ، په ځنګه دربدلی.

**سرمنشي** ( sarmunšī́ ) نر.م. لوکنبل، سرلیکوال، سکرتر جنرال.

**سرمه** ( surmá ) ښځ.م. و ګ. رانجه.

**سرمهار** ( sarmahā́r ) نر.م. هغه نري تارونه چې د اوښ د مهار په سر کې وي.

**سرمه یي** ( surmayí ) ص. نب. شین بخن تور، شین وېره تور.

**سرنا** ( surnā́ ) ښځ.م. و ګ. سورنا.

**سرنامه** ( sarnāmá ) ښځ.م. ۱) پته لیک، ادرس؛ ۲) سرېزه، سرلیک، مقدمه؛ ۳) عنوان.

**سرنج** ( suránj ) جن. د ګوګړو او پارې یو ترکیب دی چې رنګ یې سور او په نقاشۍ په کارېږي.

**سرنجه** ( sránja ) ښځ.م. سرونجه، تروړه، د ویلې شویو کوچو خیرې.

**سرنخ** ( sarnáx ) نر.م. د انګورو د څانګې هغه سر چې په چیله باندې پورته کېږي.

**سرنده** ( sarindá ) ښځ.م. سیرنده، چغانه، سیرینده، د پښتنې ساز یوه لرغوني آله ده.

**سرنده مار** ( sarindamā́r ) ص. نر.م. سرنده ږغوونکی، سرینده وهونکی.

**سرنښته** ( sarnáṣta ) ښځ.م. یو ډول ونه ده.

**سرنګ** ( suráng ) نر.م. ۱) نقب، نغم؛ ۲) و ګ. پاړمنج ۱).

**سرنګی** ( srangáy ) نر.م. ۱) دالان؛ ۲) ډېوډۍ، سرپوښلې کوڅه؛ ۳) پلوره، کوشکن.

**سرنوشت** ( sarnawíšt ) نر.م. برخلیک، تقدیر، قضا، مقدر، بخت، طالع، برخه.

**سرنی** ( surnáy ) نر.م. و ګ. سورنا.

**سرنی** ( saranáy ) ص. نر.م. د سر، پاسنی، پورتنی.

**سرنۍ** ( saranә́y ) ښځ.م. سرباڼۍ، سرباڼډۍ، ورګینه، باڼۍ، بددیزه.

**سرنېزه** ( sarnezá ) ښځ.م. د نېزې څوکه، د نېزې سر، د نېزې برچه.

**سرنیکه** ( sárnıka ) نر.م. د تر نیکه پلار.

**سرو** ( sarw ) ښځ.م. ۱) و ګ. سبر؛ ۲) مج. جګ و رسا قد.

**سرواخی** ( sarwā́xay ) ص. نر.م. سرزوره، خپل سری، سرکښ، رینګن، یاغي.

**سروازوني** ( sarwāzū́ne ) ښځ.م. د وادہ دریمه ورځ.

**سرواژ** ( sarwā́ž ) نر.م. سرفېج؛ د سرف موقف و موقعیت.

**سرواښ** ( sarıwā́ṣ ) نر.م. د سنیو پېرې دی چې څاروي ورباندې تړي.

**سروال** ( sarıwā́l ) ا. د یوه شرکت یا مؤسسې مشر.

**سرواندہ** ( sarwā́nda ) ښځ.م. و ګ. سرباندہ.

**سرواندی** ( sarwā́nday ) نر.م. ۱) د پټي هغه برخه چې د ورځ خواته وي؛ ۲) د پُل سر.

**سرواني** ( sarwānī́ ) ښځ.م. سروان، یو ډول ونه ده چې زهرجنه او ترخه مېوه لري.

**سرواڼډی** ( sarwā́ṇḍay ) نر.م. ۱) د لوڅه پاتې شوي برخه؛ ۲) په قلبه آموخته شوی غويی.

سروب (srūb) ق. سروپ، بالکل، کاملاً، گرسره، مطلق.
سروبر (sarobár) نر.م. درک، پته، ځرک، سراغ.
سروپای (sarupā́y) ق. سروپا، سرتر پښو کالي، له‌سره تر پښو.
سروتن (sarután) ق. ۱) برابر، یوشان، یوراز؛ ۲) سروپا، سروپای جامې.
سروتره (sarwátra) ښځ.م. مصلی، جاینماز.
سروته (sarwatá) ښځ.م. دوکانچه، سوپه، چوتره.
سروټکه (sarwáṭka) ښځ.م. سکروټه، داور نسبتاً غټه ټوټه.
سروټی (saroṭáy) نر.م. ۱) د شوتلې کوده؛ ۲) مشکوله، چاګله.
سروچوبی (saročóbay) نر.م. سری، شری.
سرود (۱) (saród) نر.م. ستار ته‌ورته د موسیقۍ یوه مشهوره آله‌ده.
سرود (۲) (surū́d) نر.م. نغمه، اواز، ساز، موسیقي، سندره، ټنګ ټکور.
سرور (۱) (surū́r) نر.م. ۱) خوښي، خوشحالي؛ ۲) ع. سماع.
سرور (۲) (sarwár) نر.م. مشر، لارښود، راهنما، رهبر، د قبیلې مشر، رئیس، پېشوا.
سرورخ (sarwárx) نر.م. ۱) سردانه، سربند؛ ۲) پیل، لومړی مرحله، لومړی پړاو.
سرورخی (sarwárxay) نر.م. ۱) سربند؛ ۲) دورخ د خولې سردانه چې شګې په کې غونډېږي.
سروري (sarwaráy) نر.م. سرباری، هغه بار چې د ورې پرسر اېښوول کېږي.
سروري (sarwarí) ښځ.م. ۱) رهبري، پېشوايي؛ ۲) پاچهي، سلطنت؛ ۳) تفوق، غوره والی.
سروزنه (sarwázna) ښځ.م. ګنده، بده، پتنزی.

سروغل (sroğál) مص. مت. تر پزې رسول، په ځان راوستل، په تکلیف اخته کول.
سروغلی (sroğálay) مف. نر.م. په‌عذاب اخته شوی، په تکلیف شوی.
سروغنه (sroğná) ښځ.م. ربړ، عذاب، کړاک.
سروغوونکی (srğoawū́nkay) فا. نر.م. په عذابوونکی، ځوروونکی.
سروکار (sarukā́r) نر.م. ۱) اړیکې، مناسبت؛ ۲) اشتغال، مصروفیت.
سروکال (sarukā́l) ق. کړی کال، ټول کال.
سرولم (sarū́lam) نر.م. دکار سروپای، د میاشتې سر واخیر.
سرولین (surwalín) ص. نر.م. ج. مسي، مسین.
سرونجه (srónja) ښځ.م. و ګ. سرنجه.
سروندی (sarwandáy) نر.م. ۱) پګړۍ، لنګوټه؛ ۲) د ژي د خولې تړلو مزی.
سرونګه (srūngá) ښځ.م. و ګ. سکروټه.
سرونګی (srungáy) نر.م. وانبکی، ډنډوری، د انګورو وښکی، د انګورو وښکالی.
سرونوک (sarunū́k) ق. ټول، برابر، پوره.
سروور (sarwór) نر.م. (پ: ک. )سراور، د ناوې لومړی پلا تګ د مېړه د کوره د پلار کره.
سروول (srawál) مص. مت. ۱) منبل، مروړل، سروېل؛ ۲) خوړول، تاوول.
سروهل (sarwahál) مص.ل. ۱) څرک وهل، د لمر او سپوږمۍ نوي راښکاره کېدل؛ ۲) نبات تېغنه وهل؛ ۳) مج. بیړه کول.
سروه (sárwa) ښځ. م. ګ. سرو.
سروې (sarwé) ښځ.م. ۱) لومړۍ کتنه، څېړنه او تحقیق، عمومي کتنه یا نظر؛ ۲) کچ. کچونه، مساحي، برآورد، نقشه اخیستنه.

سروېږد (sarwéẓd) نر.م. سروېږدی، بالښت.
سروېس (sarwes) نر.م. ۱) یوه نقلیه وسیله ده؛ ۲) چوپړ، دنده، نوکري؛ ۳) مذهبي رسوم؛ ٤) سیټ؛ ۷) مرسته، همکاري، ګټه.
سروېښ (sarwéṣ) نر.م. د کټ هغې پنډې رسۍ چې مونج په کې اوبدل کېږي.
سروېښت (sarwéṣt) نر.م. ۱) بالښت، سروېږدی؛ ۲) د تي سر.
سرويل (sroyál) مص.مت. د ورګې يا نورو حشرو سره مروړل يا مښل.
سروېی (sarwayáy) ګر. هغه وېی (لغت) چې په جمله کې دېل وېی ياوېيونو له خوا ستايل کېږي.
سره[1] (sára) ښځ.م. ۱) کود، پارو، امبار، انبار؛ ۲) ص. نب. اعلی، وتلی؛ ۲) په يوې کولو کې روږدی غوېی؛ ۳) اد. يو ځای، يو له بله، ښخه.
سره[2] (sra) ښځ.م. ۱) د سور مفرد مونث؛ ۲) لاښ مرداره؛ ۳) هغه ښاروي چې بې وخته بچې وغورځوي؛ ٤) ژوبله، ټپ؛ ٥) ص. نر.ج. د سورجمع مذکر؛ ۲) طلا؛ ۳) تاوده، بريان.
سرهار (sarahā́r) نر.م. د پانو، باد... اواز.
سره بانجڼ (srabānján) نر.ج. روميان، رومي باتينګڼ، رومي بانجان.
سره بګی (srabagáy) ښځ.م. يو ډول وابښه دي.
سره بوږی (srabūṛáy) ښځ.م. سره کولمه.
سره بوڼې (sarabū́ṇe) ښځ.م. سربانی، سربانه، د کولبې چرمينه.
سره تبه (sratába) ښځ.م. لويه تبه، محرقه تبه.
سره ترخه (sratárxa) ښځ.م. يو ډول دښتي بوټی (جارو)، سره جارو ته هم وايي.
سره څله (sracála) ښځ.م. د ژمي تر څلې لس ورځې وروسته موده.

سره زر (srázar) نر.ج. (ک.) طلا، يو ډول ژېړ، روښانه، قيمتي او پوست فلز دی.
سره زرين (srazarín) ص. د سرو زرو، طلايي.
سره سابي (srásābi) نر.ج. سرې سابی، توري، خوږې وخکي دي چې د سرو سابيو د انګورو ښخه لاس ته راځي.
سره سايبي (srásāybi) نر.ج. يو ډول خواږه، سره کندهاري انګور دي.
سره شله (srašála) ښځ.م. د شيرې (شرې، سرې) او کوي (ننکی) دانې.
سره شونډو خاني (srášunḍuxāní) نر.ج. يو ډول سره بې دانه کندهاري انګور دي.
سره غاړه (sráǧāṛa) ښځ.م. سره مرۍ، مرۍ.
سره غوټه (sráǧūṭa) ښځ.م. کلکه غوټه.
سره غورځکه (sráǧurǰáka) ښځ.م. د اور لويه لمبه.
سره کټو (srákaṭáw) ښځ.م. ۱) د ماشومانو يو ډول لوبه ده؛ ۲) د هغو کاليو بوخڅې يا غوټه چې کله کله اغوستل کېږي.
سرهلال (sarhalā́l) نر.م. سريکار، د پټي يو سر او بل سر چې د قلبې په وخت غوايي ورنه راګرځي.
سره لی (saraláy) ښځ.م. سربانه، هغه چرمينه چې په جغ کې اچوله کېږي او کنده ورپورې تړي.
سره مخه (sramáxa) ښځ.م. سرپاړی، سرخ باد، يو ډول ناروغي ده.
سره مياشت (sramyā́št) ښځ.م. هلال احمر، سور صليب، يو نړيواله مرستندويه موسسه ده.
سره مېنه (sraména) ا. ځاينوم دی.
سره نښته (saransáta) نر.ج ۱) ګډون، اختلاط، د دوو شيانو سره ګډېده؛ ۲) جنګېده.
سرهوا (sarhawā́) ص. نب. سر په هوا، مغروره.

**سرهوا خبره** (sarhawaxabára) ښځ.م. پوچه او بې مانا خبره، اپلاکه.

**سره و زرغونه** (sráwuzarğūná) ښځ.م. شنه زرغونه، سره و شنه، د بوډۍ تال، پینگه.

**سره ولپښ** (srawalpáṣ) نر.م. تتبار، مسگر.

**سره وله** (srawála) ښځ.م. مجنون وله، مجنون بېد.

**سرهېټه** (sarheṭá) ص. نب. سرگردان، لالهانده.

**سرهېری** (sarheráy) نر.م. د نوي پرتاگه گنډه.

**سره یکی** (srayıkáy) ښځ.م. سره پیسه، سره ایکی.

**سری** (saráy) ښځ.م. ۱) د ښځو یو ډول گانه ده؛ ۲) د چلم سرخانه؛ ۳) زین پوښ؛ ٤) په کولبه کې د غویو بدلول؛ ٤) د بام پرچال؛ ۵) یو ډول بوټی دی؛ ٦) د گل بوټی؛ ۷) دکب نیولو د تاریز دام په سر کې لویه تیږه چې دام پر ځای ساتي.

**سری**[1] (sray) نر.م.و گ. سوری[1].

**سری**[2] (saráy) نر.م ۱) د مضمون عنوان؛ ۲) جوړه، همسر؛ ۳) شری، شیری؛ ٤) د غزونه.

**سرې** (sre) ص. ښځ.م. ۱) سره زر، طلا؛ ۲) د سره جمع مونث.

**سري**[1] (sırí) ص. نب. ۱) پټ، مخفي، د سر؛ ۲) نر.م. ج. (مو.) سري راگ، د شپېږو راگو شخه یو راگ دی.

**سري**[2] (sarí) ښځ.م. ج. یو ډول جامه یا توکر.

**سریال** (sıryál) نر.م.و گ. سیریال.

**سریاني** (suryānī) ص. نب. ۱) د یوه لرغوني قوم ژبه وه چې د دجلې او فرات پر غاړو مېشت و؛ ۲) یو ډول لیک دی چې انجیل په لیکل شوی دی او نن هم په یهودو کې رواج لري.

**سرېبرد** (sareburd) ق. سرېبوده، تول، له یوه سره، ببخي، سریبوده، گرسره.

**سریته** (suryáta) ښځ.م. و گ. سوریته.

**سریخ** (srix) نر.م. یو ډول ونه ده.

**سرېز** (sréz) ښځ.م. سرس، و گ. دمتر.

**سریز** (sırīz) ص. نر.م. ۱) سلسله، دوره، پرله پسې، لړی؛ ۲) و گ. سیریال؛

**سریزه** (saríza) ښځ.م. تمهید، سریځه، مقدمه، پیل، دیباچه.

**سري سلطان** (sarisultán) نر.م. سولیس، د سپښتو یو ډول لوبه ده.

**سري سمبوري** (srisambūri) ق.و گ. سوری سوری.

**سرېښ** (sreṣ) نر.م. ج. سریښ، سریخ، هغه ماده چې د دوو شیانو د نښلولو لپاره کارېږي.

**سریښن** (srişán) ص.نر.م. سرېښناکه، سرېښناک، نښلېدونکی، سرېښنده، سرېښند.

**سرېښنه** (sreṣana) ښځ.م. مغانده، قدکشک، د تناسلي غړو او ورون ترمنځ برخه.

**سرېښول** (sreṣawál) مص. مت. نښلول، منښلول.

**سرېښېدل** (sreṣedál) مص.ل. نښلېدل، منښلېدل، خخېدل.

**سري صاف** (sırisáf) نر.م. یو ډول ململ دی.

**سریع** (sarí) ص.نر.م. ج. ۱) تندتلونکی، گړندی تلونکی؛ ۲) چټک، تېز، متی.

**سرې غوښې** (sreğwáṣe) ښځ.ج. ۱) د وینو ډکې غوښې؛ ۲) مج. مرداري غوښې؛ ۳) مج. د یتیم مال، حرام شی.

**سرېکار** (sarekár) نر.م. ۱) سروکار، اړیکی، غرض، مخامخ کېدنه؛ ۲) د پټي سپر غوړی.

**سرېله** (sarelá) ښځ.م. ۱) سره خاوره؛ ۲) ق. په خپل سر، پخپلو، ببسره.

**سرې مې** (sremáy) ښځ.ج. نسک، د میو د کورنۍ یو ډول دی چې رنگ یې سور دی.

سرینده (sarındá) ښځ.م. وگ. سرنده.

سري ننډ (sırinánd) نـر.م. (مو.) د ۷ مـاترو يو تال دی، يو گر ۲ لگي او يو پلت لري.

سرينه (sariná) ښځ.م. وگ. مختاري.

سري ورخ (sariwárx) نر.م. ۱) سرورخ، سربند، سردانه؛ ۲) د كار پيل، ابتداء.

سرې ورې (saréware) ص. نب. څرگند، معلوم، ظاهر، ښكاره، واضح.

سريه[1] (saryá) ښځ.م. لمرڅرک، لمرڅريكه، د لمر راخته.

سريه[2] (sarıyá) ښځ.م. ۱) د سپايانو يوه ډله؛ ۲) د اسلام په تاريخ كې هغه غزا ده چې زمـوږ پيغمبر (ص) پخپله تشريف نه په كې درلـود؛ ۳) وگ. سوريته.

سړپ (sṛap) نـر.م. په نـرم ځـای باندې د يو شي د غورځېدو اواز يا د خوراک په وخت د خولې نه د سړپ آواز.

سړت (sṛat) نر.م. ستونی نيوونكې ژړا.

سړتيا (saṛtyā́) ښځ.م. ۱) سـوړوالی، سـوړتوب؛ ۲) مج. بې علاقگي.

سړڅد (saṛcád) نر.ج. ساړه، يخ، يخني.

سړزوي (saṛzwí) ښځ.م. يخني، سړزی، ساړه.

سړک (saṛák) نر.م. څرک، لويه لاره، لـوی واټ، عمومي لاره، شرک.

سړوبی (saṛobáy) نر.م. ۱) د اوبو سړولو يا ښنبلو خاورين لوښی؛ ۲) د اوبو ډنډوکی؛ ۳) د سولې حالت.

سړوپ (sṛūp) ق. ۱) سروپ، ببخي، گرسره، چور؛ ۲) نر.م. په نرم شي كې ديوه شي دننوتلو اواز.

سړوپی (saṛopáy) سړې پی، شيريخ، ايسكريم.

سړوټی (saṛoṭay) نر.م. د سړي مصغر شكل.

سړوړمی (saṛwáṛmay) ص.نر.م. سوړبويه، پرسن.

سړوږمی (saṛwáẓmay) ص. وگ. سړوړمی.

سړول (saṛawál) مص. مت. يخول، د تودول مقابل.

سړه (saṛá) ص. ښځ.م. ۱) د سوړ مفرد مونث شكل؛ ۲) څره، جره، يوازې، بې ملگرې.

سړه توده (saṛátawdá) ښځ.م. ۱) د ماشومانو يو ډول لوبه ده؛ ۲) شكنه، پياوه؛ ۳) ستونزه.

سړه جگړه (saṛajag̣ṛa) ا. سوړ جنگ، انگروزه يي (تبليغاتي جنگ د هېوادونو ترمنځ).

سړه خوا (saṛaxwā́) ښځ.م. ۱) سړه سيمه؛ ۲) بې ميلي، خواشيني؛ ۳) بې تنغ و پغه مرگ.

سړه خوله[1] (saṛáxwlá) ق. يخه خوله، مړ.

سړه خوله[2] (saṛáxwalá) ښځ.م. مړه خوله، بېځايه او بې علته خوله.

سړه سا (saṛasā́) ښځ.م. ۱) سـوړ اسـويلی؛ ۲) زغم، حوصله.

سړه سمخه (saṛasamáxa) ښځ.م. بشپړ چوپتيا، چوپه چوپيا.

سړه سمبكه (saṛasumbáka) ښځ.م. د سړو وريجو هغه غونداري چې په سهار كې تودېږي او كوچنيانو ته يې د خوړو لپاره وركوي.

سړه سنا (saṛasaná) ښځ.م. چوپه چوپتيا.

سړه سيمه (saṛasíma) ښځ.م. سـړه خوا، سړه سيمه، يخه علاقه.

سړه كی (saṛakáy) ښځ.م. د ونې څوكه، د غره څوكه.

سړه لوه (saṛaláwa) ښځ.م. سړه لوې، سړه لرې.

سړی (saṛáy) نر.م. ۱) بنيادم، انسان؛ ۲) مېړه، د ښځې مېړه؛ ۳) نرينه.

سړيتوب (saṛitób) نـر.م. ۱) انسانيت؛ ۲) ښه يا معياري اخلاق درلودل.

سړېچن (sarečán) ص. نر.م. سړېچن، يخ زنی، هغه څوک چې د هرساره يې کېږي.
سړيخور (sarixór) ص.نر.م. ۱) ادمخور؛ ۲) حريص، ممسک، ظالم.
سړېدل (saredál) مص.ل. يخېدل.
سړي سرګټه (sarisargáṭa) ا. د سړي سر کالني عايد.
سړيواله (sariwā́la) ا. وګ.: سړي هوښ.
سړي هوښ (sarihúṣ̌) نر.م. سړيتوب، انسانيت، سړي ووښ.
سزا (sazā́) ښځ.م. ۱) مجازات، جزا (د نېکی يا بدی بدله)؛ ۲) ورتيا (د ښو يا بدو).
سزاوار (sazāwā́r) ص. نر.م. ج. ۱) ور، لايق، مناسب؛ ۲) د ښو يا بدو ور.
سزاول (sazāwū́l) نر.م. څوک چې محصول يا ماليه راټولوي.
سزنی (sazanáy) نر.م. د سرپ د ونې پانه.
سزني (sızaní) ښځ.م. سوزني، هغې پټی چې ماشومان په اونې کې ورباندې تړل کېږي.
سژ (saž̌) نر.م. سږ، سغ، د ټوپک د ګولۍ اواز.
سږ (saẓ) ق. سږکال، جاري کال، روان کال.
سږکال (saẓkā́l) نر.م. جاري يا روان کال، دا کال، دغه کال.
سږګی (saẓgáy) نر.م. ژژګی، جژګی، زيږګی، يو کوچنی حيوان دی چې د خپل بدن چارچاپېره سوزان لري.
سږمور (saẓmawár) ص.نر.م. سږمک، د لويو او ارتو سږمو خاوند.
سږمه (saẓmá) ښځ.م. د پزې سوری، سپږمه، سوږمه.
سږنی (saẓnáy) ص. نر.م. سږن، د سږ، د جاري کال، د روان کال.
سږول (saẓawál) مص. مت. سغول، د ګولۍ يا تيرې ويشتل.
سږهار (saẓahā́r) نر.م. سږا، سږکی، د ټوپک د ګوليو پرله پسې اواز.
سږی (sáẓay) نر.م. شژی، پړپوس، ششی، پپوس.
سږيز (saẓíz) ص. سږي ته اړوند، ريوي.
سسپار (saspā́r) نر.م. پال، تبش، پاله، کرکی، سسپاره.
سسپور (saspór) نر.م. دوه سرې ګودله، دوه سري کولنګ، دوه سرې ګېمتی، دوه سرې ګېنتی، کهی، تسکوره.
سست (sust) ص. نر.م. ۱) نرم، رقيق؛ ۲) کاهل، تمبل؛ ۳) کمزوری؛ ٤) رو. مفعول.
سست بنسټه (sustbansáṭa) ص. سست بنياده.
سست ترنګ (susttaráng) ګر. کمزوری لغوي ترکيبونه.
سستوالی (sastwā́lay) نر.م. ۱) نرموالی؛ ۲) کهالي، تمبلي؛ ۳) سستي، مفعوليت.
سستودا (sistudā́) نر.ج. وګ. سپستوږ.
سستول (sastawál) مص.مت. ۱) لټول، کهالول؛ ۲) نرمول، د سختولو مقابل.
سستي (sustí) ښځ.م ۱) ناراستي، کهالي، تمبلي ۲) ضعف، ناتواني.
سستېدل (sustedál) مص.ل. ۱) نرمېدل، رقيقېدل؛ ۲) کمزورېدل، ضعيفېدل.
سسکوره (saskóra) ښځ.م. هغه ځای چې د برې تيرې لري او سبنکوره هم ورته وايي.
سسی (sasáy) نر.م. يو ډول خړ رنګی بوټی دی.
سشکله (saškála) ق. تل، کله چې، هېڅېري، هغه وخت.
سښا (saṣā́) ښځ.م. سنبهار، پنبهار، کنبهار.

**سښسوره** (saṣsóra) ښ.غ.م. کهی، تسکوره، سسپوره.

**سطح** (sátha) ښځ.م. ۱) سطحه، مخ، د یوه شي باندنی مخ؛ ۲) هن. هر وسعت یا پراختیا چې طول و عرض لري مگر پنډوالی نه لري.

**سطحي** (sathí) ص. نب. ۱) مخیز، په سطح پورې اړوند؛ ۲) مج. برسېرن، سرسري؛ ۳) معمولي.

**سطر** (sátar) نر.م. لیکه، کرښه، د یوه لیک یوه کرښه.

**سعادت** (saʕādát) نر.م. نېکمرغي، خوشبختي، ښادمني، اقبال، نېک بختي.

**سعادتمن** (saʕādatmán) ص. نر.م. نېکمرغه، ښادمن، خوشبخت، نېکبخت.

**سعد** (sáʕad) نر.م ۱) نېکمرغي؛ ۲) ص. نېکمرغه.

**سعي** (sáʕya) ښځ.م. ۱) هڅه، خواري، زیار، مټ؛ ۲) کار، عمل؛ ۳) نیت او اراده.

**سعید** (saʕíd) نر.م. کجیر، نېکمرغه، خوشبخته.

**سغ** (sağ) نر.م. د توپک د گولۍ اواز.

**سغاو** (sağáw) نر.م. مفاد، د پسونو او وزو یو ډول ناروغي ده چې پزې یې ورېند وي.

**سغل** (sağál) نر.م. د سدې او بدهضمۍ ناروغي.

**سغندی** (sağanday) ص. ښځ.م. پوچه او سپکه (خبره)، سپوره، بېخونده (خبره).

**سغول** (sağawál) مص. مت. شغول، د توپک په وسیله گولۍ ویشتل، یا کوچنۍ تېږې ویشتل چې سغهار وکړي.

**سفارت** (sıfārát) نر.م. ۱) د یوه هېواد په مرکز کې د بل هېواد د سیاسي چارو نماینده‌گي؛ ۲) منځگړتوب کول.

**سفارش** (sıfāríš) نر.م. ۱) سپارنه، سپارښت، سپارښتنه؛ ۲) دستور یا فرمایش ورکونه.

**سفاک** (safák) ص. نر.م. وینې توېوونکی، خناړی، خنړی، خوني.

**سفر** (safár) نر.م. له یوه ځای څخه و بل لېرې ځای ته تگ.

**سفربري** (safarbarí) ښځ.م. ۱) سفر ته چمتووالی، سفر ته تیاری؛ ۲) یرغل ته تیاري.

**سفرخرڅ** (safarxárc) نر.م. څوري، خرڅی، د سفر د لارې خرڅ، سفریه، د سفر مصارف.

**سفرمینا** (safármayná) معابر، استحکامچي، د استحکاماتو مهندس، قوه‌کار.

**سفرنامه** (safarnāmá) ښځ.م. یون لیک، سفر لیک.

**سفري** (safarí) ص. نب. ۱) روان، تلونکی، عازم؛ ۲) دسفر، په سفر پورې اړوند.

**سفسطه** (safsatá) ښځ.م (من.) سافیزم، د بدیهیاتو او حسیاتو څخه انکار، مغالطه او باطل استدلال و قیاس چې د حقایقو د بل راز ښودنې لپاره کېږي.

**سفکس** (safíks) نر.م. و گ. روستاړی.

**سفلی** (suflá) ص. نب. ۱) ډېر ښکته، ډېر ټیټ؛ ۲) کښته، کوز، لر، لاندې.

**سفوف** (safúf) نر.م. میده، کپه، رش، میده دارو.

**سفېدار** (safedár) نر.م. و گ. سپېدار.

**سفیر** (safír) نر.م. ۱) د سفارت مشر، د یوه هېواد بل هېواد ته سیاسي استازی؛ ۲) هغه رسمي استازی چې کوم رسمي رسالت ولري.

**سقاو** (saqáw) نر.م. سقو، مشکي، اوبي؛ هغه څوک چې اوبه رسوي.

**سقاوه** (saqāwá) ښځ.م. سرداوه، د سړو اوبو غسل خانه، د اوبو د ذخیرې ځای.

**سقر** (saqár) نر.م. دوږخ، ورگړ، دوزخ.

سقرلاب (saqarlā́b) نر.م. سقرلات، سقلاطون، یو ډول وړین او نفیس ټوکر و.

سقط⁽¹⁾ (saqt) نر.م ۱) بې گټې شی، غریبانه کالي؛ ۲) رسوایي؛ ۳) په وینا یا لیک کې سهوه.

سقط⁽²⁾ (sıqt) نر.م. ۱) زیانونه، ضایع کول (د اولاد)؛ ۲) ص. نب. نخساني، نقصاني.

سقنقور (saqanqū́r) نر.م. شگ ماهی، شگ کب، سمساري غونډې یو ژوی دی.

سقوط (suqū́t) نر.م. ۱) لوېدنه، غورځېدنه؛ ۲) له منځه تلنه؛ ۳) مج. د یوه حاکم رژیم یا نظام راپرزېدنه.

سک (sak) نر.م. ۱) څک، د قولنج باد، بربښ، د ملا درد؛ ۲) دژړا اټکی، د ژړا سلگی.

سکاربټ (skārbíṭ) نر.م. طب. سکربوت، سکور وي، یو ډول ناروغي ده چې په بدن کې د سي ویټامین د لږوالي په اثر پیدا کېږي.

سکاره (kārá) نر.ج. زوغال، ذغال، دسکور جمع.

سکاسه (skā́sa) ښځ.م. توره بلا، شبح.

سکالرشیپ (skālaršíp) نر.م. سکالرشپ؛ هغه مرسته یا پیسې چې یوه زده کوونکي ته د هغه د لازیاتو مطالعاتو لپاره ورکول کېږي.

سکالکی (skā́lkay) نر.م. څپوني، د ښځو هغه کوچنی پړونی چې د دسمال په اندازه وي.

سکالو (skāló) ښځ.م. خبرې اترې، گپ شپ، ښکالو، مباحثه، مذاکره.

سکام (skā́m) نر.م. ۱) تېمک، د کېږدۍ ستن؛ ۲) د ودانۍ متېه یا ستن.

سکاڼ (skā́ṇ) ص. نر.م. ۱) کهار، سور رنگه آس؛ ۲) ښکلی توربخن؛ ۳) توربخن، تور وېره.

سکاڼی (skāṇáy) نر.م. ۱) چیني، ښېژوني، د ښښ قلم؛ ۲) د اوسپنې ټوټه؛ ۳) لوی، غټ.

سکاوټ (skā́wṭ) نر.م. سکوټ، څارندوی، مخکښ؛ د څارندوی د تنظیم یو غړی.

سکته⁽¹⁾ (sakáta) ښځ.م. سوده، تسلي، تسلا، صبر، قناعت.

سکته⁽²⁾ (saktá) ښځ.م. وقفه، ځنډ، تم کېدنه؛ ۱) هغه حالت چې په انسان کې د زړه یا مغز د رگو د ځیرېدلو په اثر د مرگ سبب کېږي.

سکټ (sıkṭ) نر.م. سېکټ؛ ۱) برخه، حصه؛ ۲) ډله، گوند، مذهبي ډله، فلسفي مکتب.

سکټریزم (sıkṭarizam) نر.م. سکټاریزم، د سکټ پالونکو عقاید و اعمال، د خلکو څخه د یوې ډلې د بېلتون تمایل و عقیده.

سکټور (sıkṭór) نر.م. سېکټور، سکتور، برخه، حصه، جزء، شق؛ د یوه هېواد د اقتصاد یوه ستره برخه یا ټوک.

سکځی (skaǯáy) نر.م. ۱) بخی؛ ۲) وگ. سکوی.

سکر (súkar) نر.م. نشه، مستي، هغه حالت چې د شرابو د څښلو څخه وروسته پیدا کېږي.

سکرټر (skarṭár) نر.م. سکرتر، ۱) وگ. منشي؛ ۲) د لیکنې مېز.

سکرټریټ (sıkr ṭıriyáṭ) نر.م. سکرتریت، وگ. دارالانشاء.

سکرنډۍ (skaranḍáy) ښځ.م. غوټه، غونډه، د مزرې د ښخ غوټه.

سکرو (skurū́) نر.م. وگ. پېچ ۴).

سکروټه (skarwáṭa) ښځ.م. هغه سکور چې تک سور لگېدلی وي او تک سور ځلېږي.

سکروز (sakaróz) نر.م.ج. (ک.) سکروس، د جوغندرو او شکر گنیو قند.

سکره (sákra) ښځ.م د مېزرې ښخ.

**سکریپټ** (skripṭ) نر.م. ۱) لاسي لیکنه، لیکلې توري، حروف و عددونه؛ ۲) لیکلی سند، د کاپي ضد؛ ۵) دیوې نمایشنامې، راډیویي شو، او فلم ټیپ شوې یا په لاس لیکل شوې کاپي.

**سکړک**(۱) (sukṛák) نر.م. و ګ. سوکړک.

**سکړک**(۲) (sukṛúk) ص. نر.م. عیبي شوی، خراب وران شوی.

**سکسوفون** (saksofón) نر.م. و ګ. ساکسوفون

**سکښت** (skaṣt) نر.م. سکڼنه، برش، په غچي یا بیاتي پرې کول.

**سکښتل** (skaṣtál) مص. مت. سکستل، سکڼل، بُرش کول، ټوکر غیچي کول.

**سکښته** (skáṣta) ښځ.م. قیچي شوی ټوکر.

**سکل** (skal) مص. مت. و ګ. څښل.

**سکم** (skam) نر.م. سکوم، جوال، ګونی، ګونۍ، غوندی.

**سکنجبین** (skanjabín) نر.م. شکنجبین، یو ډول تریو وزمه خوږ شربت دی.

**سکنجه** (skanjá) ښځ.م. ۱) شکنجه، د کتاب د ټوک د ټړلو آله؛ ۲) عذاب، تکلیف، رنځ.

**سکنده** (skındá) ښځ.م. ګنډنه، نړېده.

**سکنډه** (skundá) ښځ.م. سکونډه، نوکاره، تونګاره، نیکاره، سکوانداره.

**سکنی** (sakanáy) ص. نر.م. اعیاني، سکه، هغه څوک چې د یوه مور و پلار وي.

**سکڼ** (skaṇ) ص. نر.م. ۱) و ګ. سکاڼ؛ ۲) نر.م. قطع، برش، پرېکه، سکڼنه.

**سکڼل** (skaṇal) مص. مت. سکنودل، سکڼودل، په بیاتي پرېکول.

**سکڼی** (skaṇáy) نر.م. د روپیو بند، د روپیو منی؛ د پټرۍ روپیو پیېل شوی امیل.

**سکڼۍ** (skaṇáy) ښځ.م. ۱) ببرۍ لنبښتی، اوږدې او زنځیر لرونکې لنبښتی؛ ۲) د مچیو په ټمبکه کې هغه غټ سوری چې په هغه کې د مچیو میره (ملکه) راپیدا کېږي.

**سکڼۍ ماښام** (skáṇaymāṣám) ا. تیرغوڼی ماښام، تیاره ماښام.

**سکو**(۱) (sko) ښځ.م. د درمن د باد ولو ښاخی.

**سکو**(۲) (sakū́) نر.م. ۱) د ډبرو څوکی، سوپه، صفه؛ ۲) سرخلاصې ډبه.

**سکوپ** (skop) نر.م. ۱) سیمه، ساحه، میدان، د دید ساحه؛ ۲) قلمرو؛ ۳) ور. لیدنه، کتنه.

**سکوت** (sukū́t) نر.م. ۱) چوپېدنه، کرارېدنه؛ ۲) چوپتیا، چوپه‌چوپیا؛ ۳) وقفه.

**سکور** (skor) نر.م. د سکاره مفرد شکل، مړه شوې سکروټه (و ګ. سکاره).

**سکورکاڼی** (skorkā́ṇay) نر.م. د ډبرې سکاره.

**سکوست** (skwást) نر.م. سکوښت، خورخولونه، سکولنه، د پسه یا وزې د وړیو غچي کول.

**سکوستل** (skwastál) مص. مت. سکولل، سکوښتل، کتیېل، خورخولول، د پسه یا وزې د وړیو قیچي کول.

**سکوستی** (skwástay) مف. نر.م. سکښتی پسه، کل شوی پسه، غچي شوی پسه.

**سکول** (skol) نر.م. ټال، هغه رسۍ چې په ونه یا په بل شي کې اچول کېږي او ورباندې زانګي.

**سکولګر** (skwalgár) نر.م. د پسو کلګر، د پسه د وړیو قیچي کوونکی، خورخولکوونکی.

**سکولل** (skwalál) و ګ. سکوستل.

**سکون** (sukū́n) نر.م. ۱) آرام، د حرکت ضد؛ ۲) ګر. غړوندی، جزم؛ ۳) چوپه‌چوپیا، غلی توب؛ ۷) ځای پر ځای کېدنه.

**سکونت** (sukūnát) نر.م. استوګنه، اوسېدنه، ژوند کول، ځای په ځای کېدنه.
**سکونډاره** (skunḍā́ra) ښځ.م. نوکاره، نیکاره، تونګاره، سکونډنه.
**سکونډل** (skunḍál) مص.مت. تونګرېيل، نوکارې کول، سکونډاره لګول، نیکارې کول.
**سکونډه** (skū́nḍa) ښځ.م. نوکاره، نیکاره، تونګاره، سکونډاره.
**سکوڼ** (skūṇ) نر.م. و.ګ. شکوڼ.
**سکوڼکی** (skū́ṇkay) فا.نر.م. ګنډونکی، درزي، خیاط، سکوی، سکویار.
**سکوه** (skawá) ښځ.م. سکو، سبکوې، د درمند بادولو ښاخې.
**سکوی**[1] (skoy) نر.م. ۱) څېره، شکل، قیافه؛ ۲) خامک، چکن دوزي؛ ۳) دجامو د درز بخې؛ ۴) پرېشاني، فکر.
**سکوی**[2] (skawáy) فا.نر.م. سکویار، سکوڼکی، درزي، ګنډونکی، خیاط.
**سکوې** (skáwe) ښځ.م. و.ګ. سکوه.
**سکویار** (skoyā́r) فا.نر.م. ګنډونکی، درزي، خیاط، سکوی، سکوڼکی.
**سکویاند** (skoyā́nd) ګل ګنډونکی، سکوی ګر، کنبیده کار.
**سکویل** (skoyál) مص.مت ۱) سکولل، سکوستل، د پسه د وریو قیچي کول؛ ۲) د څاروي د پوستکي منبل؛ ۳) ګرول.
**سکوېنه** (skoéna) ا. و.ګ. سکویل.
**سکه**[1] (sáka) ق. ۱) و.ګ. څکه؛ ۲) ص. نب. و.ګ. سکنی.
**سکه**[2] (siká) ښځ.م. ۱) څېره، قیافه، شکل؛ ۲) د فلز یا د فلزو د مرکباتو یوه ټوټه ده چې په

ځېنو نخښو او شکلو سره مشخصه شوې وي.
**سکی** (skay) نر.م. بخې، بخیه.
**سکي** (sikí) ښځ.م. یوه جوړه اوږدې، کم بره، لرګینې دړې دي چې ښنوتي او د واورې پرمخ ځانونه په ولاړې ښویوي.
**سکېچ** (skeč) نر.م. مسوده، خاکه، نقشه، لنډیز؛ ۱) ساده رسم یا ډیزاین.
**سکیچ** (skič) نر.م. یو ډول بوټی دی چې ژېړ ګل لري او د هغه نه د سترګو کجل جوړوي.
**سکېزی** (skézay) نر.م. بخې، سکېزه، بخیې.
**سکېلوی** (skelawáy) نر.م. ۱) زګیری، نری نری فریاد یا زګېروی؛ ۲) تال، ښانک، غوری.
**سکېلی** (skeláy) نر.م. د کوچنیو مرغانو د نیولو یو ډول لومه.
**سکیم** (skim) نر.م. ۱) جوال؛ ۲) پروژه، نقشه، طرحه، پلان؛ ۱) سیستم؛ ۳) ډیاګرام.
**سکیندن** (skindán) نر.م.و.ګ. څکیندن.
**سکینده** (skindá) ښځ.م. ۱) جبیره، دمات هډ چجه؛ ۲) تسکین؛ ۳) مج. چاته جزا ورکول.
**سکیندبه** (skindába) ص. نب. سکیندبه، شکسته بند.
**سکیندی** (skindáy) ا. و.ګ. سکیندبه.
**سګال** (sagā́l) نر.م. جاج، ری، چورت، اند، اندېښنه.
**سګدا** (sogdā́) ښځ.م. و.ګ. سغد.
**سګرټ** (sıgráṭ) نر.م.ج. سیګرېټ، سګرت، سګرېټ، یوه کاغذي نلی ده چې منځ یې د تمبکو ډک وي.
**سګرټي** (sıgraṭí) ص. نب. ۱) د سګرټو معتاد؛ ۲) نر.م. هغه سګرېټ چې د تنباکو پرځای د چرسو کوچنۍ ټوټې وراچولې شوې وي.

**سګروړ** (sagróṛ) ا. سپرخی شوې شګه، شګلنه ښیره.

**سګک** (sagák) نر.م. غربی، یوه فلزي کړی ده چې د ځبلي سپکی یا د کمربند سر پکې ټینګېږي.

**سګل** (sugúl) نر.م. سلګی، سوګلی، سګلی.

**سګلاوو** (saglāwū́) نر.م. اوسپی، سګ لاهو، یو حیوان دی چې په اوبو کې ژوند کوي.

**سګوان** (sagwā́n) نر.م. څوک چې د سپیانو سره علاقه لري او یا د هغو پالنه او ساتنه کوي.

**سګه** (sagá) ښځ.م. ۱) سیږه، یو ډول غرنی غرڅه یا هوسی ده؛ ۲) پانګه، زېرمه؛ ۲) ګټه.

**سل**[1] (sal) جاله، ځل، یوه وسیله ده چې د سیند څخه سړی پورې باسي.

**سل**[2] (sil) نر.م. ۱) طب. نری رنځ، د سږو ناروغي، توبرکلوز، تي بي، یوه ناروغي ده؛ ۲) نر. ښځ. م. (بیا.) وګ. حجره؛ ۳) بر. د عایق محفظه او ظرف.

**سلا** (salā́) ښځ.م. مشوره، خوښه، مصلحت.

**سلابر** (salābū́r) نر.م. ګټه، سود، خالصه ګټه.

**سلابلا** (salābalā́) ق. بې سببه؛ ناحقه، ایله، بې موجبه.

**سلاپر** (salāpū́r) نر.م. سود، ربا.

**سلاپل** (salāpál) ص. نر.م.ج. پوپنا، سټ، چټ، تپ.

**سلاته** (salātá) ښځ.م. ۱) سالاد، سلاد، یو ډول ضمني خوراک دی؛ ۲) (پ. ک.) چې په یوه کورنۍ کې داسې نارینه پاته شي چې هغه د ننګ او مېړانې پروا نه لري قبیلوي خلک وایي چې: مېراته ښه ده خو سلاته ډېره بده ده.

**سلاټه** (salāṭá) ښځ.م. ۱) د لوخې بوټی، شلاټه، بېنګ؛ ۲) وګ. سلاته[1].

**سلاح** (salā́h) ښځ.م. وسله، اسلحه (جمع)، د جګړې هره اله.

**سلارۍ** (salāráy) ښځ.م. سلاره، سلالی، یو ډول وربښمین ښځینه پړونی دی.

**سلاست** (salāsát) نر.م. سلیس والی، ۱) نرمي، اساني؛ ۲) د کلیمو رواني؛ ۳) رامېدنه.

**سلاسوم** (salāsū́m) نر.م. سلاسون، پیش پرانګ، یو ډول غرنی څیروونکی ځناور دی.

**سلاغونډه** (salāğóṇda) ا. مشورتي یا مشورایي غونډه یا جرګه.

**سلاکار** (salākā́r) ص. نر.م. سلاګری، مشاور، مشوره ورکوونکی.

**سلاکوټ** (salākóṭ) نر.م. سلاح خانه، د وسلې د ساتنې او ذخیرې کولو ځای.

**سلام** (salā́m) نر.م. ۱) عیب نه لرنه؛ ۲) غاړه اېښودنه؛ ۳) درود، د سلام علیکم لنډون.

**سلامالېک** (salāmālék) نر.م. یو ډول بې ګله سارانی بوټی دی چې کوچیان یې اومه خوري.

**سلامت** (salāmát) ص. نر.م.ج. ۱) عیب نه لرنه؛ ۲) روغ رمټ؛ ۳) نر.م. عافیت.

**سلامتي** (salāmatí) ښځ.م. ۱) روغتیا، جوړتیا، سلامتیا، صحت؛ ۲) عافیت؛ ۳) بې عیبي.

**سلامي** (salāmí) ښځ.م. ۱) چاته د لاس په پورته کولو سره تعظیم کول؛ ۲) ص. نب. تسلیم.

**سلامي کېدل** (salāmikedál) ص. پر ګوندو کېدل، تسلیمېدل.

**سلايي** (salāyí) ښځ.م. ۱) سولو، د رانجو لرګی؛ ۲) یو ډول حشره ده؛ ۳) کلي کونجي؛ ٤) مج. د سرجوړولو یوه آله.

**سلب** (salb) نر.م ۱) پرې کول، راشکونه؛ ۲) نیونه، اخیستنه، بې برخې کول.

سلبول (salbawál) مص. مت.[۱] په زور اخيستل، نيول، محروමول، پرې کول.

سلبي (salbí) ص. نب. ۱) منفي، د نفي، د سلب، کوم صفت څخې اخيستل شوی.

سلبېدل (salbedál) مص. ل. محرومېدل، بې برخې کېدل، نفي کېدل.

سلپانی (salpánay) ا. سلپانی گل، د بېر پانی.

سلت (salát) اد. دا کليمه د «غلط» سره د تاکيد په ډول راځي.

سلټ (salát) نر. م. ۱) ډال، ۲) مورچل، سنګر.

سلټه (saltá) ښځ. م. مورچه، مورچله، سنګر.

سلخ (salx) نر. م. ۱) د ټولو قمري مياشتو آخرنی ورځ؛ ۲) مص. مت. کوتل، پوستول، څرمن ترې‌نه ايستل.

سلدراج (saldráj) نر. م. سلتراج، سندراج، ښځينه نېکر.

سلسل بول (salsalbáwal) نر. م. يو ډول ناروغي ده چې ناروغ د خپلو متيازو مخه نه شي نيوی.

سلسله (salsalá) ښځ. م. لړی، زنځير، پرله پسې والی.

سلطان (sultán) نر. م. ۱) واکمن، ټولواک، پاچا؛ ۲) تسلط، ۳) قوت؛ ٤) حجت، برهان.

سلطنت (saltanát) نر. م. ۱) واکمني، ټولواکي، پاچهي، پادشاهي. ۲) پاچهي کول.

سلطنتي (saltanatí) ص. نب. د سلطنت، د واکمنی، د ټولواکی، د پاچهی، په سلطنت پورې اړوند.

سلطه (sultá) ښځ. م. ۱) قوت، واکمني، تسلط؛ ۲) ټولواکي، پاچهي.

سلف[۱] (saláf) نر. م. (ج. اسلاف) ۱) پخوا تېر شوی؛ ۲) لرغونی، پخوانی؛ ۳) بې ګټې پور چې مسترد شي.

سلف[۲] (salf) نر. م. په موټر کې يوه کوچنۍ برقي آله ده چې ماشين پرې چالانه کېږي.

سلک (silk) نر. م. ۱) لړ، مزی، رشته؛ ۲) پېيل؛ ۳) کتار، ډله، صف.

سلکليزه (salkalíza) ا. پېړی، سليزه، د چا يا څه سلمه کليزه.

سلګ (salág) نر. م. هغه غنم چې لو شوي وي خو لا ميده شوي نه وي.

سلګون (salgún) ا. د سلو روپيو نوټ، سلګيز.

سلګه (salgá) ښځ. م. د غنمو د وږي هغه دورمه چې وږی ورباندې وي.

سلګی (salgáy) ښځ. م. ج. ۱) نيولې نيولې ژړا، تربته ژړا، ۲) سا - وروستنی سلګی يې دي.

سلګېدل (salgedál) مص. ل. سنګېدل، نيولې نيولې ژړل، په سلګيو راتلل.

سلم (salám) نر. م. ۱) تسليمېدل، بندي کېدل؛ ۲) هغه کمه بيه چې مخکې د فصل د پخېدلو څخه د غلې خاوند ته ورکوله کېږي؛ ۳) په لغت کې دعقد په مانا دی؛ ٤) ص. نر. م. دسلو عدد ته منسوب، سلم لمبر؛ ۵) نر. م. خېل، قبيله.

سلماني (salmāní) نر. م. نايي، دلاک، ګلابي.

سلمشر (salmášar) نر. م. د سلو تنو مشر، د سلو تنو اداره کوونکی.

سلمه (salmá) ښځ. م ۱) حيرانتيا، تعجب، حيرت؛ ۲) کورنی، خېل، قبيله.

سلنډر (salandár) نر. م. سليندر، ۱) استوانه، هر استوانه يي ډوله شی؛ ۲) د موټر په ماشين کې يوه استوانه يي شکله آله ده.

سلنډه (slandá) ښځ. م. شنډه ښځه، هغه ښځه چې اولاد يې نه کېږي.

سلنګی (salangáy) ښځ. م. لوبه او برګه هندوانه.

**سلنه** (salána) ا. فیصدي، سلواله.

**سلواغه** (salwāǧá) ښځ.م. سولاغه، بوکره، د خامې څرمنې ډولچه.

**سلوک** (sulū́k) نر.م. ۱) کړه وړه، کردار؛ ۲) کوم ځای ته داخلېدنه؛ ٤) کومه لاره انتخابول.

**سلوم** (slum) ص. نر.م. څرګند، نوموړی، نامدار، مشهور.

**سله** (sála) ښځ.م. ۱) خښته؛ ۲) قالب، چکۍ؛ ۳) رېخته ګري؛ ٤) الشه، دغنمو او وریشو شوغه؛ ۵) هغه لنګه غوا چې شیدې یې ډېرې غوړې وي؛ ۲) داوسپنې د تودېدو حالت؛ ۳) د اوسپنې مېخ.

**سله رېږ** (salarez) ا. و ګ. سله رېږی.

**سله رېږی** (salarḗžay) نر.م. خښتمال، خشتمال، خښتې رېژوونکی، خښتې ایستونکی.

**سلی** (saláy) نر.م. ګوتمی، ګوته، ګوتې.

**سلۍ** (saláy) ښځ.م. ۱) د توپک ګز؛ ۲) داوسپنې یو ډول ګوتمۍ ده چې خېټې یې د جادو د دفعې لپاره په ګوته کوي؛ ۳) خرې، کوټه، ډېرې.

**سلیپر** (salipár) نر.م. بې بنده بوټونه، کورنۍ څپلې یا بوټونه.

**سلیت** (slit) ص.نر.م. ډک، ترخولې.

**سلیتۍ** (salitáy) ښځ.م. چلۍ، ترنګړ.

**سلیټ** (saléṭ) نر.م. سلېټ، هره هغه څمکنۍ ماده چې د ورو توکو (خاورو یا رېګو) څخه جوړه وي.

**سلیخ** (slix) نر.م ۱) سلېښت، سرېښ؛ ۲) ص. نر. م. ج. نښتی، موښتی، ښخ.

**سلیز** (salíz) ص. نر.م. د سلو، سلم، سلګون نوټ.

**سلیس** (salís) ص.نر.م. ج. روان، اسان، ساده، عام فهم.

**سلیقه** (salīqa) ښځ.م. ۱) ذوق؛ ۲) طبعه، طبیعت.

**سلیم** (salím) ص. نر.م. ج. ۱) سالم، بې عیبه، تندرسته؛ ۳) هغه زخمي چې مرګ ته نېږدې وي؛ ٤) د شعر د بحرونو څخه یو بحر دی.

**سلیماني** (sulimānī́) ص. نب. ۱) دپارې زهر؛ ۳) ښېتون، پښتانه؛ ۳) یو ډول لیک دی.

**سلېمانۍ** (slemānáy) ښځ.م. یوه مبارکه مرۍ یا ډبره.

**سلېمانۍ کب** (slemānaykáb) نر.م. یو ډول ماهي دی چې په سریاندې داغ لري.

**سلي ورخ** (salaywarx) نر.م. هغه ډنډ چې په هغه کې د شولو لپاره اوبه راټولېږي او پاکېږي.

**سم** [1] (sam) ص. نر.م. ج. ۱) درست، سیخ، برابر؛ ۲) اصولي، باقاعده؛ ۳) و ګ. زهر؛ ٤) نر.م. د نغمې او د نڅا د حرکاتو سره د موسیقۍ د اهنګ بشپړ سمون.

**سم** [2] (sum) نر.م ۱) کورمه؛ ۲) سمڅ، غار، سنب؛ ۳) سوه، د آس یا خره یا کچرې د پښې کوبنه.

**سما** (samā́) ښځ.م. سمون، سمښت، سموالی.

**سماء** (sama) ښځ.م. ۱) اسمان، هسک؛ ۲) دکوټې یا بل شي چت.

**سماچه** (samāčá) ښځ.م. سینه بند، د ښځو واسکټ.

**سماع** (samā́ʿ) ښځ.م. ۱) اورېدنه، اورېدل؛ ۲) ښه اواز، غنا، سرود او وجد.

**سماغ** (samā́ğ) نر.م. سماک، سماق؛ یو ډول ونه ده چې تروه مېوه لري.

**سمانتیکس** (samanṭiks) نر.م. سیماسیولجی، سیمېنتیکس؛ ۱) مانا پېژندنه، دمعانیو پوهنه د لغاتو او معانیو علم؛ ۲) د مفردو علایمو علم؛ ۳) د منطقي قیاسو تیوري.

**سماو** (samā́w) نر.م ۱) نیاو، عدل؛ ۲) سموالی.

**سماوات** (samāwā́t) نر.م. ۱) اسمانونه؛ ۲) ص. نر.م.ج. میرات، تباه.

**سماوار** (samāwā́r) نر.م. د اوبو ایشولو لوښی.

**سمبادي** (sambādí) ښځ.م. هغه سُر چې سندرغاړی په خپله سندره کې تر بادي وروسته د هغه سُر سره زيات اړیکی ولري.

**سمبال** (sambā́l) ص.نر.م.ج. خوندي، مجهز، جوړ، تيار، سينګار.

**سمبالول** (sambālawā́l) مص.مت. ۱) خوندي کول؛ ۲) مجهزول؛ ۳) دولي کول، سينګارول، ښکلی کول.

**سمباليدل** (sambāledā́l) مص.ل. ۱) خوندي کېدل؛ ۲) مجهزېدل؛ ۳) سينګارېدل.

**سمبټه** (sambaṭá) ښځ.م. د غنمو وريجو بټه، هغه پخې شوې وريجې چې کلکې وي.

**سمبل** (sambál) نر.م. (مو.) تلی، برغوری، چمچک، سينج.

**سمبوری** (sambū́ray) نر.م. و.ګ. سوری[۲].

**سمبوسه** (sambosá) ښځ.م. سماسه، سنبوسه، يو ډول خواږه دي.

**سمبوغکه** (samboğáka) ښځ.م. وړوکی او تنګ لوښی.

**سمبول** (samból) نر.م. سيمبل، نخښه، نښانه، رمز، اشاره، نماينده.

**سمبوليزم** (simbūlízam) نر.م. سيمبليزم، سنبوليسم: ۱) د نخښو په وسيله څرګندول، د يوې موضوع ناڅرګنده بيانونه؛ ۲) د تشبيه اداتو استعمالونه.

**سمبوليک** (sambolík) ص.نر.م.ج. سيمبوليک ۱) په سمبول کې څرګند شوی؛ ۲) هغه څه چې د سمبول په توګه وي.

**سمبه** (sumbá) ښځ.م. ۱) د تبر يا ترښخې د ښتې د لاستي د اچولو سوری؛ ۲) داوسپنې ميله چې توپک وربانډې پاکوي؛ ۳) د شلګې څوکه.

**سمپتي** (simpatí) ښځ.م. سنپاتي، ۱) همدردي، غمخوري؛ ۲) کيفي تطابق، هم آهنګي.

**سمپوزيم** (simpoziyám) نر.م. سمپوزيم، سيمپوزيم؛ پر يوې ټاکلې موضوع باندې د نظريو يا مقالو جونګ.

**سمپورن** (sampurán) ص. نر.م (مو.) سنپورن، اووه سُره لرونکی راګ.

**سمت**[۱] (smat) نر.م. شمج، ګاره، سمڅ، سمڅه.

**سمت**[۲] (samát) نر.م. کافي مقدار، پوره اندازه.

**سمت**[۳] (samt) نر.م. طرف، لور، خوا، پلو.

**سمتوری** (samtū́ray) نر.م. کرچ، کريچ.

**سمتړ** (samaṭár) ص.نر.م. زيات چاغ او شلنډه.

**سمټه** (samáṭa) ښځ.م. ۱) لويه پګړی؛ ۲) پڅه؛ ۳) چاغه، شلنډه، غوښنه.

**سمټی** (samáṭay) ښځ.م. شمټې، لپانکی، يو ډول لويه ده.

**سمڅ** (smac) ښځ.م. سمڅه، غار، ګاره، شپولغاړی، تبوزه، خوال، سموڅ.

**سمخ** (samáx) ښځ.م. ۱) د «سوړ» د کليمې سره يوځای راځي او تاکيد افاده کوي؛ ۲) مج. شوخ

**سمخ سترګی** (samaxstárgay) ص. نر.م. شوخ سترګی، بې حيا، سپين سترګی.

**سمخنی** (samaxáṇay) نر.م. هغه کيږدی چې د زړو زړو ټوکرانو څخه جوړه شوې وي.

**سمدستي** (samdastí) ق. دستي، بې له ځنډه، سمدلاسه، فوراً.

**سمدسموني** (sámdasamūní) ق. ټول، تمام، ګرده، غونډ، واړه.

**سمدلاسه** (sámdalā́sa) ق. ۱) دستي، بې له ځنډه؛ ۲) پرله پسې، جاري، مسلسل.

**سمدم** (samdám) ص. نر.م. ج. ۱) مستقیم، راست ۲) روغ رمټ، سالم؛ ۳) اهل، فیټ، سم.

**سمر** (samár) نر.م. ۱) ماله، هغه آله چې جولاګان د هغې په واسطه خپلې تانسټې ته آړ ورکوي؛ ۲) کیسه، نکل، ګپ شپ، ستری، مواسه.

**سمساره** (samsārá) ښځ.م. سمسېره، سمسره، شلخورکه، سوسمار.

**سم سلا** (samsalā́) نر.م. سمه مشوره، د غونډې پرېکړه، د مجلس تصویب.

**سمسود** (samsód) نر.م. یو ډول زهري غرنی ونه ده چې د انارو دونې سره شباهت لري.

**سمسور** (samsór) ص. نر.م.ج. ۱) تر و تازه، غوړېدلی؛ ۲) پوخ، رسېدلی؛ ۳) مج. اباد.

**سمسورتوب** (samsortób) نر.م. ۱) د ګلونو او ونو غوړېدنه؛ ۲) د فصل پخېدنه؛ ۳) ځوانۍ ته رسېدنه؛ ٤) مج. اباتوالی، آبادي.

**سمسورول** (samsorawā́l) مص. مت. ۱) دباغ تر و تازه کول؛ ۲) د فصل پخول؛ ۳) مج. آبادول

**سمسوری** (samsóray) ص. نر.م. مثال، ساری، انډول، مثل، همتا.

**سمسورېدل** (samsoredә́l) مص. ل ۱) تر و تازه کېدل؛ ۲) فصل پخېدل؛ ۳) مج. آبادېدل.

**سمښت** (samáṣ̌t) نر.م ۱) سمون، برابري، تنظیم؛ ۲) موافقه؛ ۳) رخه، بغض، حسد.

**سمع** (sámʻa) ښځ.م. ۱) اورېدنه؛ ۲) د اورېدنې حس، غوږ؛ ۳) د لوی څښتن یو صفت دی.

**سمعي** (samʻí) ص. نب. د سمعي، د اورېدو، د اورېدو په حس اړوند، هغه څه چې په غوږ یا اورېدو اړه لري.

**سمفوني** (samfoní) ښځ.م. و.ګ. سیمفني.

**سمک** (samák) نر.م. کب، ماهي.

**سمګوټ** (samgwáṭ) نر.م. قایمه زاویه.

**سملاسي** (samlāsí) ق. سمدلاسه، سمدستي، فوري.

**سملاسي والی** (samlāsiwā́lay) ا. بیړندوبي، بیړه، عجلت.

**سم له سمنې** (samləsamáne) ق. سم د سموني، ټول، واړه، تماماً.

**سم له کنډه** (samləkánḍa) ق. ټول، واړه، غونډ، ګرده.

**سم له لاسه** (samləlā́sa) ق. و.ګ. سمدلاسه.

**سمن** (samán) نر.م. ۱) یاسمن، یاسمین؛ ۲) محکمې ته بلنه، محکمې ته غوښتنه.

**سمنټ** (simínṭ) نر.م. ج. و.ګ. سیمټ.

**سمند** (samánd) ص. نر.م. زېړبخن آس.

**سمندر** (samandár) نر.م. ۱) بحر، ۲) ستر دریاب (و.ګ. سیند، دریاب)؛ ۳) د اور چینجی.

**سمندرپوه** (samandarpóh) ص. سمندرپوهاند، سیند پوه.

**سمندرپوهه** (samandarpóha) سمندرپوهنه.

**سمندرکڅ** (samandarkáč) سمندر غاړه، ساحل.

**سمندروال** (samandarwā́l) ص. سمندربوني، امیرالبحر.

**سمندروز** (samandróz) نر.م. شامندروز؛ ورېښمینه ټوټه؛ یو ډول ټوکر دی.

**سمندري** (samandarí) نر.ج. د بحر، بحري، د دریاب، د سمندر.

**سمندی** (samandáy) نر.م. یو ډول ژېړ مونږک دی.

**سمندی ډیک** (samandáydik) نر.م. یو ډول کوچنۍ، غرنۍ او سارانۍ مرغۍ ده.

**سمندول** (samandól) نر.م. شين گلی، يو ډول بوټي دی چې په پالېزونو کې شين کېږي.
**سمنگی** (samangáy) نر.م. کوندری، يو کوچنی دسترخان دی چې ډډوډۍ پېړې وربانديې جوړوي.
**سمنو** (samanú) نر.م. سمنک، يو ډول خواړه دي چې د شنو کړو غنمو څخه پخېږي.
**سمنه** (samána) ښځ.م. سمونه، ترتيب، تنظيم.
**سمواله** (samwā́la) ښځ.م. تنظيم، ترتيب، سمون، درستي.
**سموالی** (samwā́lay) نر.م. سمتوب، سمواله، سمي، درستي، برابرښت.
**سمور** (samū́r) نر.م. گېډرې ته ورته يو ډول حيوان دی خو تر گيدړې کوچنی دی.
**سمول** (samawə́l) مص. مت ۱) برابرول، جوړول؛ ۲) مج. اصلاح کول، لارې ته راوستل.
**سمون** (samū́n) نر.م. ۱) انتظام، تصحيح، برابري؛ ۲) موافقه، جوړښت، تطابق.
**سمونمل** (samūnmál) نر.م. د پوليس په تشکيل کې تر سمونيار لوړه رتبه ده چې دعسکرۍ په تشکيل کې دډگرمن د رتبې سره او د ملکي تشکيل له څلورمې رتبې سره برابري کوي.
**سمونوال** (samūnwā́l) نر.م. د پوليس په تشکيل کې تر سمونمل لوړه رتبه ده چې د عسکرۍ په تشکيل کې د ډگروال د رتبې سره او د ملکي تشکيل له دريمې رتبې سره برابري کوي.
**سمونيار** (samūnyā́r) نر.م. د پوليس په تشکيل کې تر سرڅارمن لوړه رتبه ده چې په عسکرۍ کې د جگړن د رتبې سره او د ملکي تشکيل له پنځمې رتبې سره برابره ده.
**سمه** (sáma) ص، ښځ.م ۱) د سم مونث؛ ۲) ښځ.م. درسته خبره؛ ۳) اواره، مسطح.
**سمه تارک** (samatārák) ص. نر.م. د دام په لور د چوغکو سم او سيخ تگ.
**سمه تخته** (sámataxtá) ق. شا په تخته، ستوني ستغ.
**سمه وراشه** (samawrāšá) ښځ.م. رښتيا خبره، سمه خبره.
**سمی** (samáy) ښځ.م. د معمار رجه، د معمار گمه.
**سمی** (samáy) نر.م. مهندس، کچگر.
**سمي** (samí) ص. نب. د سم، د زهرو، زهرجن.
**سميتي** (samití) ښځ.م. (تا.) د رېگويدا په عصر کې د آريايانو په سياسي تشکيلاتو کې د يوې جرگې نوم و.
**سمېدل** (samedál) مص. ل. ۱) برابرېدل، جوړېدل، تنظيمېدل؛ ۲) لارې ته برابرېدل، اصلاح کېدل.
**سمېستر** (samesṭár) نر.م. سمستر؛ نيم کال، د شپږو مياشتو يوه دوره.
**سمينار** (saminā́r) نر.م. و گ. سېمنار.
**سن** (sın) نر.م. عمر، د عمرمقدار.
**سنا** (saná) ښځ.م. دمشرانو جرگه، داعيانو مجلس، سينيټ، ۱) هغه مجلس چې غړي يې د يوه هېواد د مشهورو رجالو څخه انتخابېږي؛ ۲) يو ډول بوټی دی؛ ۳) روښنايي؛ ٤) يو ډول وربښمينه جامه.
**سناتور** (sanātór) نر.م. د سنا غړی، د مشرانو دجرگې غړی، د اعيانو دمجلس غړی.
**سناتوريم** (sanātoriyám) نر.م. د هوساينې ځای، آرامځی، د مسلولينو روغتون.
**سنار** [1] (sunā́r) نر.م. زرگر.
**سنار** [2] (sanā́r) نر.م. د پنځلسو پولو سره معادله يوه پخوانۍ افغاني سکه وه.
**سناري** [1] (sunārí) ص.نب. طلا کاري شوی، مطلا.

**سناري**[۲] (sanārí) ص. نب. سندري، سوربخن سندوري رنګ، د سره او نارنجي ترمنځ رنګ.

**سناریسټ** (sınārísṭ) ص. نر.م. ج. (هن.) هغه څوک چې د سینما فلم لپاره سناریو لیکي.

**سناریو** (sınārıyó) ښځ.م. د فلم یا تیاتر داستان، هغه کیسه چې یو ډایرکټر د هغه له مخې فلم جوړوي او یا یې په تیاتر کې ښکاره کوي.

**سناسي** (sanāsí) ص. نر.م. و ګ. سنډاسي.

**سنبال** (sanbā́l) ص. نر.م. و ګ. سمبال.

**سنبل** (sunbúl) نر.م. څنې، څنې کوکو؛ یو ډول ګل دی.

**سنت** (sunát) نر.م. ج ۱) طریقه، روش، ۲) سیرت، طبیعت؛ ۳) عرف، عادت؛ ٤) استعمال؛ ٥) شریعت.

**سنتز** (santáz) نر.م. سنتسس، ترکیب، د انالسیس ضد؛ ۱) د یوه جونګ لپاره د توکو سره یو ځای کونګ؛ ۲) مرکب، جونګ، مجموعه.

**سنتور** (santū́r) نر.م. مو. سنطور، د موسیقۍ یوه تاریزه آله ده.

**سنتول** (sunatawā́l) مص. مت. ۱) ختنه کول؛ ۲) مج. په چل او ټګي سره له چانه څه شکول.

**سنتي** (sunatí) ښځ.م. ختنه سوري، د ختنه سوري یا سنتونې مراسم.

**سنته** (sanṭā́) ښځ.م. څېره، قیافه، بڼه.

**سنج**[۱] (sanj) نر.م. ۱) هغه نرۍ دېوال چې په سر، لاندې او منځ کې یې اوږده لرګي ورکړي وي؛ ۲) مو. و ګ. سمبل.

**سنج**[۲] (sunj) ص. نر.م. غمجن، دق، خپه.

**سنجاب** (sanjā́b) نر.م. تر پشي کوچنی حیوان دی، لکۍ یې اوږده او ببره، رنګ یې خړ او شین وېره او پوست یې نرم دی.

**سنجاق** (sanjā́q) نر.م. کوچنی فلزي ستن ده چې یو سر یې تېره او بل سر یې څه غونډ وي.

**سنجتوب** (sunjtób) نر.م. غمجنتوب، پرېشاني.

**سنجد** (sanjíd) و ګ. سنجیته.

**سنجش** (sanjíš) نر.م ۱) پرتله، سنجونه، مقایسه؛ ۲) تلل؛ ۳) مج. غور.

**سنجکی** (sanjakáy) ښځ.م. و ګ. دمل.

**سنجول** (sanjawā́l) مص. مت. پرتله کول، مقایسه کول، تلل، اندازه کول.

**سنجه** (sánja) ښځ.م. ښنجه، شنجه، شنجکۍ، سنجکۍ، ښځ کتېه دانه (و ګ. دمل).

**سنجیته** (sınjíta) ښځ.م. سنجته، سنځله، سنجد؛ یو ډول ونه ده چې مېوه یې تر خرما کوچنۍ ده.

**سنجېدل** (sanjedā́l) مص.ل. پرتله کېدل، مقایسه کېدل، اندازه کېدل، تلل کېدل.

**سنچوټ** (sančóṭ) نر.م. هغه تېره چې په دېوال کې د نښې لپاره ایښودل کېږي.

**سنځل** (sanǰā́l) مص. مت. ۱) تویول، خالي کول (اوبه او ...)؛ ۲) آزادول، خوشې کول.

**سند**[۱] (sanád) نر.م. هغه لیکنه چې د یو چا پور یا طلب ثابتوي او یا کوم مطلب ثابتوي.

**سند**[۲] (sind) نر.م. و ګ. سیند.

**سند**[۳] (sand) ا. یووالی، اتفاق، رای.

**سندان** (sandā́n) نر.م. سټ، هغه اوسپنیزه آله چې ښښ وربانډي اوسپنه ږدي او پر پلک یې ټکوي.

**سندانکه** (sandānáka) ښځ.م. شاتینګه، ګهرک، د چرګ سندان.

**سندربوله** (sandarbóla) ښځ.م ۱) سندرغاړې، هغه ښځه چې هم بدلي وایي او هم ناځي؛ ۲) مشاعره؛ ۳) د ساز و نڅا مجلس.

**سندرغاړی** (sandarğā́ray) ص. نر.م. سندرچي، سندربول، اواز ویونکی، غزله ویونکی.

**سندرمار** (sandarmā́r) سندربول، سندرغاړی.

**سندرمیر** (sandarmír) ص. نر.م. ج. موزیک دایرکټر، دایرکټر.

**سندره** (sandára) ښځ.م. (هن.) بدله، غزله، ترانه، لوبه، ټپه، ساز و اواز.

**سندری** (sandəráy) ص. نر.م. د خواږه او ښه اواز څښتن، خوش آوازه، خوږ اوازه.

**سندریز** (sandaríz) ص. د سندرې اړوند، موزیکال.

**سندرېزی** (sandrézay) نر.م. یو ډول سارانې سپین وابنه دي چې پاسته ازغي لري.

**سنډر** (sandár) نر.م. لوی او غټ اوښ.

**سندل** (sandál) نر.م. ج. صندل: ۱) چندړ، چندن، یو راز ونه ده؛ ۲) یو ډول کړاوې دي؛ ۳) یو ډول خوشبویه پسته شیریني ده.

**سندله** (sandalá) ښځ.م. یو ډول مساله ده چې د چونې، پخې خښتې، بډه ګال او دهګیو د سپین ګخه لاس ته راځي.

**سندلۍ** (sandaláy) ښځ.م. صندلي، سندلي، یوه لرګینه، څلور پښې لرونکې آله ده چې په ژمي کې د څانو د تودولو لپاره د نغري پر سر ایږدي.

**سندنی** (sındanáy) ص. نر.م. و ګ. سیندنی.

**سندوخ** (sandúx) نر.م. و ګ. صندوق.

**سندور** (sundúr) نر.م. و ګ. سوندر[٢].

**سنډوی** (sandóy) نر.م. د غاټول د ګل بوټی.

**سندی** (sandáy) نر.م ۱) شندی، غاټول؛ ۲) د غاټول د ګل بوټی چې سنډوی هم ورته وایي.

**سنډ** (sand) نر.م. و ګ. زنجبیل.

**سنډا** (sandā́) نر.م. ۱) منبي، د مېښې نر؛ ۲) ص. نر.م. (مج.) غټ، تورب یا شلنډ سړی.

**سنډاسی** (sandā́say) نر.م. سنیاسی، سناسي، جوګی، هغه ملنګ چې په غرونو کې د کیمیا په بوټو پسې ګرځي.

**سنډک** (sandák) نر.م. د مستو او نورو شیانو د چڼولو (صافولو) توکر.

**سنډه** (sandá) ښځ.م. ۱) سارانی توره زرکه؛ ۲) ص. ښځ.م. شنډه ښځه.

**سنزلوک** (sanzalúk) نر.م. یو ډول بوټی دی چې معمولاً د څېړی د ونو لاندې راشین کېږي.

**سنک** (sanák) نر.م. د لرګي لوی ښانک یا کاسه.

**سنکوپری** (sankópray) نر.م. یو ډول ګڼ او غونډ مونډ بوټی دی.

**سنکه** (sanáka) ښځ.م. د کوترو د نیولو لومه یا جال.

**سنکیا** (sankyā́) ښځ.م. سنکهیا، و ګ. زرنیخ.

**سنکیرن** (sankirán) نر.م. ج. (مو.) سنکیرڼ، هغه راګ چې د بل راګ سره ګډوي.

**سنګار** (sıngā́r) نر.م. و ګ. سینګار د تولو صیغو سره.

**سنګاره** (sıngā́ra) ښځ.م. یو ډول اغزن بوټی دی چې مېوې ته یې سنګاره وایي.

**سنګاوڼ** (sıngāwáṇ) نر.م. سکان، پتوار، د کښتۍ (کشتۍ) وروستۍ برخه.

**سنګ بر** (sangbúr) ص. نر.م. ډبرې ایستونکی، ډبره ماتوونکی.

**سنګ تراش** (sangtarā́š) نر.م. ډبره توږونکی، ډبرې جوړوونکی.

**سنګتره** (sangtará) ښځ.م. سنتره، مالټې ته ورته یو ډول مېوه ده.

**سنګدان** (sangdā́n) نر.م. سنګدانکه، شاتینګه، شاتینګی، تینګی.

**سنګدل** (sangdíl) ص. نر.م. سخت زړی، سخت زړه، ظالم، بېرحمه.

**سنګر** (sangár) نر.م. مورچل، مورچه.

**سنګروال** (sangarwā́l) ص. د سنګر اړوند، جنګیال، همسنګر.

**سنګرۍ** (sangráy) ښځ.م. یو ډول بوټی دی چې ځینې خلک یې د چای په ځای ایشوي.

**سنګرېزه** (sangrezá) ښځ.ج. کاڼی، کرېږ، جغله، جغل، کاڼي، ګاټي.

**سنګ ریشه** (sangrišá) ښځ.م. پله تیږه.

**سنګړه** (sangáṛa) ښځ.م. ګوسه تیږه، غټه ډبره.

**سنګسار** (sangsā́r) نر.م. ۱) یوه کوچنۍ توره حشره ده چې تر تیږو لاندې اوسېږي؛ ۲) نر.م. ج. هغه څوک چې د جزا په توګه د تیږو تر باران لاندې مړ شي.

**سنګ سول** (sangsól) نر.م. یو ډول بوټی دی.

**سنګک** (sangák) ص.نر.م.ج. ۱) متکبر، متکور؛ ۲) یوه موضوع یا کار چې مشکل شي.

**سنګکه** (sangáka) ښځ.م. یوه ښځینه ناروغي ده چې د اولاد تر زېږولو وروسته پیدا کېږي.

**سنګلاخ** (sanglā́x) نر.م. سسکوره، تراړه، کاړ، ګاړ، سنګړه، شنګار، ګاګره.

**سنګوپ** (sangúp) نر.م. سرلاټی، سرکونډو، سرکنډۍ، سرکول، سرکونډۍ، سرکول کونی.

**سنګوټی** (sangóṭay) نر.م. د سوي بچی.

**سنګورکه** (sangoráka) ښځ.م. د اوجوشو د داغلو مخصوصه ټوکرۍ.

**سنګوری** (sangoráy) نر.م. یو ډول سارانی بوټی دی.

**سنګوړی** (sangoṛáy) نر.م. ۱) د حیوان بچی؛ ۲) غونډ منډ ښایسته ماشوم.

**سُنګویکه** (sangoyáka) ښځ.م. یو ډول بوټی دی چې ګردې ګردې پاڼې لري.

**سنګهار** (sangahā́r) نر.م. د ګولیو مسلسل اواز.

**سنګهاړه** (sanghā́ṛa) ښځ.م. د هندوستان یوه مېوه ده. جوړنګ یې په تالابونو کې کېږي.

**سنګیت** (sangít) نر.م. مو. د موسیقۍ پوهنه، د موسیقي علم.

**سنګېړ** (sangéṛ) نر.م. شګلن، هغه ځمکه چې ډېرې تیږې لري.

**سنګین** (sangín) ص.نر.م. ۱) درونډ؛ ۲) برچه؛ ۳) مج. پتمن، د وقار څښتن.

**سنن** (sunán) نر.ج. د سنت جمع (و ګ. سنت)

**سنوات** (sanawā́t) نر.ج. د سنې جمع.

**سنول** (snawál) مص. مت. شنول، خوځول، حرکت ورکول.

**سنه** (saná) ښځ.م. ۱) کال، د ۱۲ میاشتو مجموعه؛ ۲) نېټه، تاریخ.

**سني** (suní) ص. نب. اهل سنت، اهل سنت او جماعت، اهل تسنن.

**سنی** (snay) ښځ.م. وړین لاسي تارونه، سردوز، اینځی، انځی، نځی، انسی، ځنی.

**سنیاسي** (sanyā́si) ص.نر.م.و ګ. سنهاسي.

**سنېدل** (snedál) مص. ل. ښورېدل، خوځېدل.

**سڼ** (saṇ) نر.م. ۱) درواغ؛ ۲) و ګ. زنجبیل؛ ۲) د پزې د سوڼلو اواز.

**سو** (su) ف. ۱) و ګ. وشو؛ ۲) ص. نر.م. ژوبل، ټپي؛ ۳) نری، ډنګر؛ ٤) نر.م. سوء، شر، فساد.

**سوا**[1] (suwā́) ښځ.ج. شته، سووه، شبت، یو ډول سابه دي چې خوړل کېږي.

**سوا**[2] (siwā́) اد. بې، بغیر، بدون، بېله، پرته.

**سوا**[۲] (sawā́) ښځ.م. وگ. سود، وگ. ربا.
**سوابېره** (swābéra) ښځ.م. یو ډول بوټی دی.
**سواد** (sawā́d) نر.م ۱) سیاهي، توروالی؛ ۲) کاپي، نقل؛ ۳) زده کړه، د لیکلو او لوستلو قدرت.
**سوارکار** (swārkā́r) ص.نر.م. سپرلوني، سپرکښ، د آس په سورلۍ کې ښه لاس لرونکی.
**سواره**[۱] (swārá) نر.ج. سپاره، د سپور جمع.
**سواره**[۲] (sawārá) ښځ.م. د غنمو ډنډر، ناړې، دروزه، خرنډ، وډ، ناړې.
**سواره څپلۍ** (swāracaplā́y) لو. د یوې لوبې نوم دی.
**سواري** (sawārí) ښځ.م. ۱) سپرلي، سورلۍ؛ ۲) مو. د ۱٦ ماترو یو تال دی.
**سوارې** (sawāré) ښځ.م. ماښامنۍ مېلمستیا، د ماښامنۍ وعده، ماښامنۍ کتنه.
**سواست** (swāst) نر.ج. شوی، سوی، د جمع مخاطب صیغه ده.
**سوال** (swāl) نر.م ۱) پوښتنه؛ ۲) غوښتنه، خواست ٤) ع. د حقیقت طلب؛ ٥) چړ، گدایي.
**سوال وځواب** (swāl u ǰawā́b) نر.م. (بد.) هغه صنعت دی چې شاعر په خپل کلام کې پوښتنې او ځوابونه سره یو ځای کړي.
**سوالي** (swālí) ص. نب. ۱) د گدایي؛ ۲) دسوال شی، سوالي څيز، د بل چا (شی).
**سواليه** (swālıyá) ښځ.م. (تن.) ۱) پوښتنه، استفهام، تپوس، ۲) تپوسنی، د پوښتني نخښه چې شکل يې داسې دی (؟).
**سوان** (suwā́n) نر.م. سوهان، سوهن، وسپن تورۍ.
**سوانح** (sawānı́h) ښځ.م.ج. ۱) ژوند لیک، تېرې ژوند پېښې، پېژندپانه، پېژند لیک ۲) پېښې.
**سوان کار** (suwānkā́r) ص. نر.م. سوهان کار، خراد، څوک چې د خرادۍ کار کوي.
**سوانگ**[۱] (swāng) نر.م. پېښې، د شکل او جامې بدلونه.
**سوانگ**[۲] (suwā́ng) نر.م. یو ډول سمنو دی چې د غنمو تېغنې وچې او میده کوي او بیا يې د حلوا په څېر پخوي، سوانک، سمنک.
**سوانگی**[۱] (swāngáy) نر.م. ۱) ممثل، اکتر؛ ۲) شعبده باز.
**سوان گی**[۲] (suwāngáy) نر.م. سوهان گی، وړوکی سوهان، کوچنی سوان.
**سواني** (suwānı́) ښځ.م. اساني، اسانتیا.
**سوايي** (suwāyı́) ښځ.م. وگ. سود، ربا.
**سوب**[۱] (sob) ص. نر.م. ۱) حاضر، موجود، تیار، چمتو؛ ۲) منتظر، په انتظار.
**سوب**[۲] (sawáb) نر.م. ۱) د سبب مفغن شکل؛ ۲) فکر، اند، تصور.
**سوب**[۳] (suwáb) نر.م. چاره، علاج.
**سوبتيا** (sobtyā́) ا. حاضري، حضور، شتون.
**سوبله** (soblá) ښځ.م. وگ. شوبله.
**سوبمن** (sobmán) ص.نر.م. بریالی، فاتح، مظفر، کامیاب، مرادمن.
**سوبه**[۱] (sūbá) ښځ.م ۱) دکاریز څا؛ ۲) دپله (پُل) رواق، د کاریز یا لویې ویالې هغه لوی سوری چې اوبه ترې تېرېږي.
**سوبه**[۲] (sóba) ښځ.م. ۱) مراد، مقصد، غوښتنه؛ ۲) سوده، آرام، راحت؛ ۳) بری، فتح، ظفر.
**سوپ** (sūp) نر.م ۱) دهلېز، دالېز؛ ۲) یو ډول توکر دی؛ ۳) ښوروا.
**سوپاري** (supārı́) نر.ج. د تودو ملکونو یو ډول نبات دی چې دانې يې غوز ته ورته دي.

**سوپرانو** (sopranó) ص. نر.م. (مو.) سپرانو، د ښځو او هلکانو هغه لوړ اواز چې د سندرې په وخت کې یې له حلقه باسي.

**سوپرایګو** (suparigó) نر.م. ج. (رو.) وجدان.

**سوپره** (suprá) ښځ.م. کونه، غره، سومبی، مقعد.

**سوپری** (supráy) ص. نر.م. ۱) مفعول، کوني؛ ۲) مج. نامرد، رذیل

**سوپړه** (supará) ښځ.م. ۱) زړه خیرنه خولی؛ ۲) ص. ښځ.م. غته، چاغه نجلۍ.

**سوپلۍ** (sopláy) ښځ.م. یو سپینه نرمه ډبره ده.

**سوپه** (supá) ښځ.م. و.ګ. سوټه.

**سوپی** (sūpáy) نر.م. بزوګی، نربیزو.

**سوپۍ** (sūpáy) ښځ.م. ۱) بیزو، شادو، شادي؛ ۲) کشکره، کیشکره.

**سوت** (sut) نر.م. د معماري ګز له اجزاوو څخه دی چې اته واحده یې یو اینچ کیږي.

**سوتره** (sutrá) ص. نب. پاک، نظیف، پاکیزه.

**سوترۍ** (sutráy) ښځ.م. ګی، اینځی، انځی، سنی، انسی، خولوند، سوتلۍ.

**سوتڼ** (sutə́n) نر.م. تیسن سپی، ځوسمار سپی، ځوسن سپی.

**سوتونه** (sutū́na) نر.ج. فریادونه، زګیروي.

**سوټ**(۱) (sawū́ṭ) ص.نر.م. د شیانو ساتونکی.

**سوټ**(۲) (sūṭ) نر.م. دریشي، جامې، کالي.

**سوټ بوټ** (sūṭbū́ṭ) نر.م. ۱) شل و شوټ سړی چې سره غونډ شوی وي؛ ۲) فیشن؛ ۳) مج. کلک تړل، له حرکته ایستل.

**سوټک** (suṭák) نر.م. څټک، څوټک.

**سوټکه** (suṭáka) ښځ.م. د جوارو وړی.

**سوټکی** (suṭakáy) نر.م. ۱) یو ډول اغزی لرونکی بوټی؛ ۲) یو ډول وربښمین خامک؛ ۳) د حد

تاکلو نښه، د څلي په څېر کوچنی منار.

**سوټمار**(۱) (soṭmā́r) نر.م. بنجاره، ګرځنده بنجاره خرخوونکی چې په کلیو کې ګرځي.

**سوټمار**(۲) (sūṭmā́r) ص. نر.م. سوټن، موټې کوونکی.

**سوټه**(۱) (sū́ṭa) ښځ.م. ۱) سوپه، د غایطه موادو کلوله؛ ۲) ډوډۍ، مړۍ.

**سوټه**(۲) (soṭá) ښځ.م. د جوارو ناپوست شوې توکه، د جوارو هغه وړی چې شخوله ولري.

**سوټه لمی** (soṭalámay) نر.م. ۱) لټ څاروی؛ ۲) مج. لټ او تمبل سړی.

**سوټه مار** (soṭamā́r) ص. نر.م. جنګره، جنګي.

**سوټی** (soṭáy) نر.م. ۱) دلاس غټ لرګی؛ ۲) چقمق، پنډ؛ ۳) مج. د نارینه تناسلي آله.

**سوجاب** (sujā́b) نر.م. پرخولی باندې د ګلابتونو یا زر تارو دوره.

**سوجه** (sū́ja) ښځ.م. د سرنګ د الوځولو د موادو تول (پیمانه).

**سوجي** (sū́ji) جن. یو ډول ځیره اوړه دي چې د غنمو او غټو وریجو څخه جوړیږي.

**سوچ**(۱) (suč) ص.نر.م.ج. ۱) پاک، سوتره، خالص؛ ۲) ببخي، بالکل، بشپړ، پوره؛ ۳) سوچاک، سوچکی، د پیچې اچولو په څېر یوه لوبه ده.

**سوچ**(۲) (soč) نر.م. فکر، خیال، تصور، هوښ.

**سوچه**(۱) (sučá) ص. نب. نره، خالص، پاک، چاڼ، صفا؛ د یوه جنسه.

**سوچه**(۲) (sóča) ښځ.م. د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

**سوچی** (sūčáy) نر.م. څولی، څوولی، اسکنه، شخرلی.

**سوچي** (sočí) ص.نب. تشویش کوونکی، سوچ کوونکی، تشویشي، مشوش.

**سوځل** (swaǰál) مص. مت. سېځل، اورلګول، اوراچول.
**سوځند** (swaǰand) ص. نر.م ۱) سوځېدونکی، سوونکی؛ ۲) سېزوونکی، سوځوونکی.
**سوځول** (swaǰawál) مص. مت. سوځل، سوزول، سېزل، اوروراچول.
**سوځېدل** (swaǰedál) مص. ل. اور اخېستل، سول، سېزېدل.
**سوخت** (soxt) نر.م. ۱) سوی، خوړ؛ ۲) غوسه، قهر.
**سوخته** (soxtá) ص. نب. ۱) سوی، سوځل شوی، کباب شوی؛ ۲) سکور.
**سوختي** (soxtí) ص. نب. هغه څوک چې کومه جنسي یا عاطفي هیله یې تر سره نه شي.
**سوخر** (suxə́r) نر.م. عناد، بغض، کینه.
**سوخړه** (suxṛa) ښځ.م. د شلې غوښې ټوټه.
**سوخړی** (suxṛə́y) ص. ښځ.م. ډېر وخ شوی، شوربدلی، شړېدلی، خوړین.
**سوخړی پوخړی** (suxṛə́ypuxṛə́y) ص. نب. بشپړ خوړین پړین، په اورکې خوړین پړین.
**سوخل** (suxál) مص. مت. څخل، سوخول، منډل، تخته کول، ترخولې ډکول.
**سوخول** (suxawál) مص. مت. ۱) منډل، تخته کول؛ ۲) سونول؛ ۳) سوری کول؛ ٤) چوخول، چخول؛ چوکه کول؛ ٥) مج. تحریکول.
**سوخېدل** (suxedál) مص.ل. ۱) خوټېدل؛ ۲) سوری کېدل؛ ۳) ډکېدل، کېمنډل کېدل.
**سود**[1] (sūd) نر.م. ۱) ګټه، فایده، نفع، منفعت، روګه، برغه؛ ۲) و ګ. ربا؛ ۳) ص.نب. سُد، شد، خالص، سوچه، د موسیقۍ بسیط مقام.
**سود**[2] (sod) نر.م. دمه، تسل، تسکین، ډاډ.
**سودا**[1] (sawdā́) ښځ.م ۱) ملانکولي، میلنکولي؛ ۲) ګروم، تلوسه، تشویش؛ ۳) مینه، عشق؛ ٤) هوا او هوس.
**سودا**[2] (sawdā́) ښځ.م. اخیستنه او خرڅونه.
**سودات** (sodā́t) ص. نر.م. صالح.
**سوداګر** (sawdāgə́r) ص. نر.م. تاجر، تجار.
**سوداګري** (sawdāgarí) ښځ.م. ۱) تجارت؛ ۲) مج. ځان ته ګټه او د بل په زیان کار کول.
**سودايي** (sawdāyí) ص. نب ۱) وسواسي، تورانی، مالیخولیايي ۲) مشوش؛ ۳) لېونی، مجنون.
**سودخور** (sūdxór) ص. نر.م (ج. سودخواره) سود خوړونکی.
**سودکلیان** (súdkalıyā́n) نر.م. ج (مو.) کلیان، د سنکیرن راګوڅخه یو راګ دی.
**سودګن** (sūdgán) ص. نر.م. سودمن، ګټور، فایده من.
**سودمن** (sūdmán) ص. نر.م. ګټور، فایده من، مفید، ترنورو ښه.
**سودوزیان** (sūdozyā́n) ګټه او تاوان، ګټه وټه.
**سوده**[1] (sawdá) ښځ.م. توکری.
**سوده**[2] (sūdá) ص. نب. ۱) هغه خاروی چې د پښو کړمې او سمونه یې سولېدلي وي او ښه نه شي تلای؛ ۲) تپله، بندیز؛ ۳) قبض، بند؛ ٤) سولېدلی، زوړ؛ ٥) و ګ. سوچه.
**سوده**[3] (sóda) ښځ.م. سود، تسل، تسلي، اطمینان، سبیه، ډاډ.
**سوډا** (sawḍā́) ښځ.م. ک. سوډه، سودا؛ سوډیم بای کاربونېټ (پلی، پلي).
**سوډر** (soḍár) نر.م. ۱) خنځیر، خنزیر، خوګ، ۲) مج. لټ؛ ۳) بې ادبه (سری)، بې ډبه.
**سوډه** (sawáḍa) ښځ.م. لاپه، شاپه، باته، غوره.

سور[1] (sor) نـر.م. ۱) وګ. پسور او عرض[2]؛ ۲) چای چښنه؛ ۳) ص. نر.م. سپور؛
سور[2] (sūr) ص. نر.م. (ج. سره) ۱) د وینو رنګ چې اصلي رنګ شمېرل کېږي؛ ۲) مو. وګ. سر[4]. ۳) تود ، سوځوونکی؛ ٤) مج. هغه څوک چې په قهر شوی وي؛ ٥) له توجه، تمایل او مصروفیت څخه سخت حالت.
سوراړ (surāṛ) نـر.م. ۱) وچه، بې وښـو ،بې اوبو دښته؛ ۲) سخته تودوخه؛ ۳) د اړ میاشت.
سوراغزی (sūrağzáy) نر.م. سراغزی، یو ډول اغزی دی چې په غرونو کې وده کوي.
سوران (sūrān) نر.م ۱) جل، لمر وهنه؛ ۲) داوښانو یو ډول ناروغي؛ ۳) ویر، ناري سورې.
سوراني (sūrāní) ص. نر.م. ویرجن، ناري سورې وهونکی.
سورانا (sūrāṇā) ص. نر.م. وګ. سوربوني.
سورباد (sūrbād) نـر.م. جوانـوان، د ترپک او جمامې داني.
سوربخن (sūrbaxán) ص. نر.م. تت سور، پیکه سور، سوررنګی، سورته ورته، سور ویره.
سوربڼی (surbāṇay) ص. نر.م. سور بوڼی، سـور رنګی، سور بخن، سورویره.
سوربېخی (sūrbéxay) نر.م. د خروړک په څېر یو ډول واښه دي.
سورپلی (surpaláy) نر.م. ۱) سورپلی، یو ډول واښه دي؛ ۲) سورپلی، یو ډول زهري بوټی دی.
سورپوستی (sūrpóstay) ص.نـر.م. سـور پوستکی، د سره نژاد لرونکی، سور نژاده.
سورت[1] (sūrát) نر.م. سوره، د قرآن مجید د څو آیتونو مجموعه، د قرآن مجید یو فصل.
ت[2] (swrát) نر.م. ۱) وګ. صورت؛ ۲) مج. صحت، روغتیا؛ ۳) مج. تناسلي آله.
سورت[3] (surt) نر.م. سورټ، نوع، ډول، رقم.
سورت بندي (surtbandí) ښځ.م. درجه بندي، پر ډولونو ویشنه، د یوه ډول سره جلا کونګ.
سورتمان (sortmān) نـر.م. سورتچي، د سورت کولو د چارې مؤظف.
سورتي (sortí) ښځ.م. (مو.) سورتي، د بېرو راګ د پترو له بارجاوو څخه یو بارجا (فرع) ده.
سورټیکری (surtiḳráy) ص. ښځ.م.ج. سور ټکری، هغه ښځه چې بدي یا مړې پرې وشي.
سورجه (sūrjá) ښځ.م. له ژمنیو سپوږتو څخه دی.
سورڅاڅکی (sūrcāčkay) نر.م. یو ډول مضره حشره ده.
سورخچوکی (sūrxačūkay) نر.م ۱) سره غوښه؛ ۲) مج. سوربخن سړی.
سورخکه (sūrxáka) ښځ.م. ۱) یو ډول مرغی؛ ۲) یو ډول د کرلو څمکه.
سورخولی (sūrxūlay) ص.نر.م. خونخور، ظالم.
سورخه (surxá) ص.نب. ۱) یو ډول غنم؛ ۲) سور (سړی)؛ ۳) سورغاړی کرک.
سورخی (surxáy) نـر.م. ۱) سرخي، د غنمو یو ډول ناروغي؛ ۲) سوربخون اس؛ ۳) د ښځـو د پایڅو مخصوص پیوند.
سورخي (surxí) ښځ.م. سرخي؛ ۱) سوررنګ پیدا کول؛ ۲) توره غوښه؛ ۳) یو ډول د ښځود مخ پوډر دي؛ ٤) سرلیک، عنوان.
سوردلی (surdaláy) نر.م. یو ډول مرغی ده.
سورسات (sursāt) نر.م. د حکومت له خوا پر خلکـو باندې لګېدلی مالیه، کلنګ، مالیه.
سورساری (sursāray) نر.م. شند، شاهین، باتور، لندبرزی، یو ډول ښکاري مرغه دی.

**سورسانده** (sūrsánda) ښځ.م. سور ساندی، یو ډول غرنی وابنه دی.

**سورسترګی** (sūrstáray) ص. نر.م. ۱) د سرو سترګو خاوند؛ ۲) مج. جسور، سرتېر.

**سورسرې** (sūrsáre) ښځ.م. یو ډول کوچنۍ مرغۍ، ده چې ښه ربز کوي.

**سورسورکه** (sūrsūráka) ښځ.م. سور سورانکه. له کاغذ څخه جوړه شوې تولۍ ده چې منځ یې له باروتو څخه ډکوي او د خوښيو په شپو کې اور ورکوي؛ ۲) تونډ باد.

**سورغاړکه** (sūrğāṛáka) ښځ.م. سورغاړی، یو ډول کوچنۍ مرغۍ ده.

**سورغاړې لونګۍ** (surğāṛelungáy) ښځ.م. هغه لونګۍ چې څنډې یې سرې وي.

**سورکار** (surkā́r) نر.م. د شلومبو غوړکه چې د باړک د بوټې د اچولو وروسته د آش ورکولو په وخت، د څوزانو او نورو بوټو ريښې ایشوي او اوبه یې په هغه کې اچوي.

**سورکت** (surkát) نر.م. د خولې د ناروغیو یو درمل.

**سورکور** (surkór) نر.م. سره ټغرونه او د کور نور بشپړ سامان (اثاث البيت).

**سورکوکو** (surkokó) نر.م. سورګلاب، سورګل ګلاب.

**سورکونډو** (surkundó) ښځ.م. سورکنډو، هغه نجلۍ چې لا خپل پېغلې قیجي کوي (واده شوې نه وي).

**سورکی** (surkáy) ص.نر.م ۱) سوربخن، سوروبره؛ ۲) د سور مصغر؛ ۳) د باد د لګېدو تونډ اواز.

**سورکۍ** (surkáy) ښځ.م. ۱) د سورکي مونث شکل؛ ۲) الوبالو.

**سورکی مېږی** (surkáymezáy) نر.م. سور مېږی، یو ډول د پېږ وروکی ژېړ مېږی دی.

**سورګړی** (surgáṛay) نر.م. سرګړی، یو ډول غرنی وابنه دي چې پاڼې يې وچې او خړ رنګه وي.

**سورګلی** (surgwálay) نر.م. یو ډول سابه دي، سور ګل کوي. رنجکه، تاندوله، رنځکه.

**سورګولغ** (surgūlā́ǰ) نر.م. سور او چاغ سړی.

**سورل** (surál) نر.م. سورن، سورکرنګ آس.

**سورلاسی** (surlā́say) ص. نر.م. قاتل، خوني، جنګي او جنجالي، وينې تويوونکی.

**سورلان** (surlā́n) نر.م. هغه سپی چې وروستی پښې یې پېخونه او خنهونه لري.

**سورلکۍ** (surlakáy) ښځ.م. یوه وړه مرغۍ ده. سورلکی هم ورته وايي.

**سورلمنه** (surlamána) ښځ.م. سورلمنې، هغه ښځه چې په اولاد مړه شي.

**سورلمنې** (surlamané) ښځ.ج ۱) د سورلمنه جمع، ۲) په ځينو محاورو کې د مفرد لپاره هم راځي.

**سورلن** (sorlán) ص.نر.م. سېږی، مخ په سيوري، سيورن، سورن، سېږن، سايه رخ.

**سورلنډی** (sūrlandáy) نر.م. سورلنډ، شغال.

**سورلنی** (swarlanáy) ص.نر.م ۱) سپور، په موټر یا پر آس... سپور، ۲) د سورلۍ، د سپرلۍ.

**سورلونی** (swarlū́nay) نر.م. سپرلونی، مرکب، هغه څه چې سورلي باندې کېږي.

**سورلي** (swarlí) ښځ.م.و.ګ. سپارلي.

**سورلی** (surláy) نر.م. یو ډول سپينه نسواري رنګه مرغۍ ده چې په زړه پورې ربز کوي.

**سورلیمار** (swarlimā́r) ص. نر.م. سپور، هغه څوک چې د سپرلۍ په کار کې ښه تکړه وي.

**سورمخي** (surmaxí) ښځ.م. ابرو، عزت، پت.

**سورمخی** (surmáxay) ص. مر.م. ۱) هغه څوک چې مخ یې سوروي؛ ۲) پتمن، عزتمن.

**سورمړنی** (sūrmaṛánay) ښځ.م. چابکی. د وزرو مور، مادرکیکان.

**سورمل** (surmál) نر.م. سرمل، یو ډول چیچونکي وابه دي چې غونډ غونډ اغزي لري.

**سورمېخ** (surméx) نر.م. (لو.) یو ډول لوبه ده.

**سورن** (során) نر.م. و.ګ. سورل.

**سورنا** (surná) ښځ.م. سرنا، سورنی، سرنی، سورنا؛ د پښتني آرکسترا د یوه ساز نوم دی.

**سورناچي** (surnāčí) ص. نر.م. سورنی چي، هغه څوک چې سورناوهي.

**سورنجان** (surnanján) جن. د یوه نبات ګل دی چې ګل حضرتي او شنبلید هم ورته وايي.

**سورنچی** (surnıčáy) نر.م. یو ډول سور چینجی دی چې خټه کې ژوند کوي.

**سورندا** (surnadā́) ښځ.م. ساز، غنا.

**سورنګ** (suráng) نر.م. و.ګ. سرنګ(۱).

**سورنی** (surnáy) نر.م. ۱) و.ګ سورنا؛ ۲) کوچنی لرګین چلم.

**سوروالی** (surwā́lay) نر.م ۱) سورتوب، سرخي؛ ۲) تودوالی.

**سورور** (surawár) ص. نر.م.ج. پلن، عریض، پراخ، سرور.

**سوروری** (surwáray) نر.م. یو ډول مرغه دی.

**سوروزمه** (surwázma) ص. نب. سوررنګی، تت سور، سورویره، سوروشمه، سره ته مایل.

**سوروزی** (surwázay) نر.م. ۱) هغه غنم چې ډډی یې سور وي؛ ۲) یو ډول نبات دی.

**سورول**(۱) (surwál) نر.م.ج. سرول، سوروېل، سروېل، مس، تامبه، تانبه.

**سورول**(۲) (swarawál) مص. مت. و.ګ. سپرول.

**سورول**(۳) (surawál) مص. مت. ۱) یو شی په زور سره غورځول؛ ۲) دحملې لپاره لمسول؛ ۳) په قهر راوستل، په خوشکه کول.

**سورولکندا** (surwalkandā́) ښځ.م. مسي لګن، مسي چلمچي.

**سورولکنډی** (surwalkandáy) سوررول، کونډی (سي دکی)، مسي لوښی.

**سوره**(۱) (swará) ښځ.م. ۱) سپره، ۲) هغه نجلۍ چې په بدو کې ورکړی شوې وي.

**سوره**(۲) (sūrá) ښځ.م. ۱) چیغه، ناره، کریکه؛ ۲) برېنګ، خوساوړه، یو ډول بدبویه بوټی دی چې ژېړ ګل کوي؛ ۳) و.ګ. سورت(۱).

**سورهار** (surahā́r) نر.م. د باد د چلېدو تونداواز.

**سوره و پیاده** (swarawupyādá) نر.ج. سوره کنایه ده د هغې نجلۍ څخه چې په بدو کې ورکول کېږي؛ او پیاده کنایه ده د هغه نغد جنسه څخه چې د سورې سره په بدل کې ورکړی شي.

**سوری**(۱) (sūráy) نر.م. ۱) سری، غار، سوړه؛ ۲) سرابښ، لالچي، حریص.

**سوری**(۲) (sóray) نر.م. ۱) سیوری، سوره، سایه، ۲) دماشومانو یو ډول ناروغي؛ ۳) مج. حمایه؛ ۴) بډوډی، پښتورګی، ګرده، بډوګی، بډوکی.

**سوري** (sūrí) نر.م. ۱) شل، لوی جوال، لکه ګلواره؛ ۲) نر.ج. د سوري جمع؛ ۳) ص. نب. زوري، سوریانو ته منسوب یا مربوط.

**سورې** (sūré) ښځ.م. نارې، چیغې، کریکې.

**سوړی** (sawaráy) ښځ.م. د آس د زین عرق ګیر، توغل، توغم، شاګوری.

**سوریانګه** (suryā́nga) ښځ.م. زېړکه، زېړه سوپی، یو ډول ژېړه مرغی ده.

سوریته (suryáta) ښځ.م. سریه، سورتی، انډیواله؛ هغه وینځه چې له هغې څخه د مالک اولاد پیدا شي.

سوربخنه (suréxna) ښځ.م. وګ. سرېښنه.

سوربدل (suredál) مص.ل. ۱) یو شی په زور سره غورځېدل. ۲) د حملې یا منډې لپاره لمسېدل؛ ۳) قهرېدل، عصبي کېدل.

سوربدل (swaredál) مص.ل. وګ. سپرېدل.

سوري سمبوري (swrísumbúri) ص. نب. سوری، غار غار.

سوري سوري (sūráysūráy) ص. نر.م. غار غار، سري سمبوری، سوروی سوروی.

سوري کوتره (sorikáwtára) ښځ.م. یو ډول کوچنی ساراني کوتره ده.

سور (sor) ص.نر.م. (ج. ساړه) ۱) یخ، د تود مقابل؛ ۲) مج. لټ او بې علاقې سړی؛ ۳) مج. غیر جدي او غیر حساس سړی.

سورا (sorā) ص. نر.م. نا راسته او ډارن سړی.

سورباد (sorbād) نر.م. ۱) یخ باد، ۲) مج. غم او مصیبت.

سوربور (sorbór) ص. نر.م. پریشانه، غمګین.

سوربوی (sorbūy) نر.م. بدبوی، سوړ ووم.

سورپور (sorpór) ص. نر.م. ۱) بېخي سوړ؛ ۲) مج. بې مینې، بې محبته، بې مهره.

سورسک (sorsák) نر.م. وګ. سوکړک.

سورسمخ (sorsamáx) ص. نر.م. سوړپوړ، سورنګور.

سوربنت (sorást) نر.م. سړښت، سړتیا، سوړتیا، یخني، سړوالی، سوړوالی.

سورفکره (sorfík ra) نر.م. غلی، بې دم و دوده، ارام، غیر جدي.

سورګهیځ (sorgahíj) نر.م. خړ ګهیځ، خړ سهار، سپېره ګهیځ، شنه خړه.

سورمېچ (sorméč) ا. د سړو یا یخنی مېچلو آله.

سورمېری (sormeráy) ص. نر.م. سوړپوړ، کرخت (سړی)، بې مینې او بې احساسه سړی.

سورن (sūrán) ص. نر.م. درواغجن، لاپک.

سورنګور (sorngór) ص.نر.م. وګ. سوړ پوړ.

سورنوزی (sornózay) ص. کم شهوتی، شهواني کمزوری.

سوروالی (sorwālay) نر.م. سوړتیا، سړتیا، سړښت، سړوالی، سوړتوب.

سورول (sorawál) مص. مت، وګ. سړول.

سوروینی (sorwínay) ص. د سړې سینې خاوند، سهاند، زغمونکی.

سوره (sūra) ښځ.م. ۱) غار، سوری؛ ۲) د باد خورک ناروغي؛ ۳) مقعد.

سورې[1] (sūre) ښځ.ج. سونې، دروغ.

سورې[2] (sóre) ص. نب. لټ، تمبل او ډارن سړی.

سوربدل (soredál) مص.ل. وګ. سړېدل.

سوریز (sawaríz) ص. نر.م. په خپل سر (سړی)، ایله ګرد او بې بند وباره (سړی).

سوز (soz) نر.م. ۱) سوخت، سوی، سونه؛ ۲) مو د یوه اواز یا سندرې کیفیت؛ ۳) غوسه، خوشک؛ ٤) دنګا، دنګونه؛ ٥) څوروونه.

سوزاک (sozāk) نر.م. طب. ګونوریا، (وګ. څوڅی).

سوزان (sozān) ص.نر.م. سوونکی، سوځوونکی، سوزناک.

سوزبر (sawzbár) نر.م. شنه پاڼه، شنه پخه.

سوززین (sūzaren) نر.م. ۱) اداره کوونکی؛ ۲) خان، ارباب؛ ۳) مطلقه حکومت.

**سوزش** (sozíš) نر.م. سوی، سوخت، سون.

**سوزفون** (sūzafón) نر.م. سوزافون، سوسفون، له مسو یا ژېړو څخه جوړه شوې پوکېدونکې د موسیقي آله ده چې هېلیکون هم ورته وایي.

**سوزکی** (swazakay) نر.م. سیزنکی، سېزونکی، د اتشک بوټی.

**سوزل** (swazál) مص.مت.و گ.سوځل.

**سوزنک** (sozanák) نر.م. ۱) یو ډول غرنی نبات دی؛ ۲) په ټوپکو، توپنچو کې یوه کوچنۍ میله ده.

**سوزني**[1] (suzní) ښځ.م. و گ. سېزني.

**سوزني**[2] (sozaní) ښځ.م. ۱) یو ډول لاسي خامک دی؛ ۲) روی جایي، د کټ د سرڅادر.

**سوزواری** (sawzwāráy) ښځ.م. یو ډول وړه او تېته چرگه ده.

**سوزه** (sawzá) ښځ.م. ۱) د کمیسه پیوند، پینه؛ ۲) د کمیس درز، بارچاک؛ ۳) و گ. سبزه.

**سوزی** (sozáy) نر.م. ورکوټې، غونډه، سرپوښ لرونکې توکرۍ ده.

**سوړمه** (sozmá) ښځ.م.و گ. سړمه.

**سوړه** (sūẓá) ښځ.م. یو ډول اشخار دي چې د تغرونو په رنگ کې کار ورڅخه اخیستل کېږي.

**سوسړ** (sūsə́ṛ) نر.م ۱) د اوبو سور، دریابي خوگ؛ ۲) ص.نر.م. (مج.) وړ سترگی؛ ۳) د گړوې غل، غل، غلچکی.

**سوس کېدل** (sūskedə́l) مص. ل. رېږدېدل، لړزېدل، رپېدل.

**سوسمبر** (sosambár) نر.م. ویلنی، شین شوېی، سارانی ویلنی.

**سوسن** (sosán) نر.م. ۱) اورد، جگ قدی، د لوړې تنې خاوند؛ ۲) و گ. رمبک ۱).

**سوسني** (sosaní) ص.نب. سوسن رنگی، بانجني رنگی، چنیار رنگی، تت تور رنگ.

**سوسی** (sūsáy) نر.م.و گ. سسی.

**سوسۍ** (sūsə́y) ښځ.م. ۱) یو ډول ورېښمین یا پنبه یي توکر دی؛ ۲) سیسۍ.

**سوسیال** (sosyā́l) ص.نر.م. ۱) ټولنیز، اجتماعي، ټولنپال، په ټولنه اړوند؛ ۲) معاشرتي، تفریحي.

**سوسیال دیموکرات** (sosyāldimukrā́t) نر.م. د ټولنپالې ولسواکۍ، په ټولنپالې ولسواکۍ مربوط.

**سوسیالیزم** (sosyālízam) نر.م. اجتماعیت، ټولنپالنه، اشتراکیت، د اجتماع اصالت.

**سوسیاني** (sosyānī́) ص. نر.م. یو ډول پخوانی سور کوره سان و.

**سوسیولوجي** (sosyolojí) ښځ.م. سوسیالوجي، ټولنپوهنه، ټولنپېژندنه، علم الاجتماع.

**سوښتی** (swáṣtay) نر.م. ۱) وښکی، د خولې کونج؛ ۲) ماکو، د جولا ماکو.

**سوغ** (sūğ) نر.م. ۱) د سونېلو اواز؛ ۲) تسلي، داد گیرنه؛ ٤) یوه خوله نسوار؛ ٥) لړ شی.

**سوغات** (sawğā́t) نر.م. تحفه، بلهېډی، بلهنډه.

**سوغالی** (sūğā́lay) نر.م. ۱) د سوی غار، د سوی کور؛ ۲) کوچنی غار، وړه سوړه.

**سوغځی** (sūğǰáy) ښځ.م. سوزی، هغه غټه تنگ خولې توکرۍ چې له میزري څخه جوړېږي.

**سوغن** (sūğán) ص.نر.م ۱) هغه پسه یا وزگوری چې سر و وهلی وي؛ ۲) مج. بېکاره؛ ۳) سوغی.

**سوغني** (sūğnáy) نر.م. سیغون، سیغون شوی اس.

**سوغول** (sūğawə́l) مص. مت. ۱) سونول، په پزه کې کوم شی کشول؛ ۲) سغول، یو شی په زور سره غورځول؛ ۳) مج. تحریکول.

**سوغوندي** (suğwandí) ښـځ.م. کـينه، بغض، عناد، دښمني.

**سوغی** (sūğay) نر.م. سوغکی، سونکی.

**سوغېدل** (sūgedál) مص.ل. ۱) پـرېوتل، ۲) له پزې نه اواز راوتل، سونېدل؛ ۳) سغېدل.

**سوق** (sawq) نـر.م. ۱) شـړل؛ ۲) بـوول، لېږل؛ ۳) د گلو اورمو شړل؛ ٤) حديث ويل او بيانول.

**سوق الجيش** (sawquljáyš) نـر.م. د عسکرو سوقونه، يوه معين هدف ته د عسکرو لېږنه.

**سوق الجيشي** (sawquljayší) ص. نـب. پـه سوق الجيش پورې اړوند، د عسکرو په لېږلو اړوند؛ ۲) ښځ.م. د عسکرو لېږنه، سوقونه.

**سوک**(۱) (sūk) نر.م. موټی، موټ، د لاس د پنجې غونډ شوی حالت.

**سوک**(۲) (swak) نر.م. يخ شمال، سوړ باد.

**سوک**(۳) (sıwák) ص. نر.م. هغه لرگی چې مخ يې سکور وي او منځ يې سوی نه وي.

**سوکا** (sawkā́) ص. نب. په ارامـه، پـه تسـلي، ببغمه، مطمئن.

**سوکاله**(۱) (sawkālá) نر.م. ناراسته، تمبل، لټ، استراحت غوښتونکی.

**سوکاله**(۲) (sokā́la) ص.نب. آرام، آسوده، مطمئن، خوشاله.

**سوکالي** (sokālí) ښـځ.م. آرامـي، آسـوده گي، خوښي.

**سوکره مالگه** (sawkaramā́lga) ښځ.م. سکيره مالگه، هغه خوړه چې مالگه يې ډېره وي.

**سوکړ** (sukár) ص. نر.م. ۱) سوگت، بخيل، سخت؛ ۲) کوسه؛ ۲) د جگې او نرۍ ونې خاوند.

**سوکړک** (sukrák) نـر.م. سـوړسک، سکړک، گلولی، جواری، پياځه.

**سوکړه** (sokrá) ښـځ.م. ۱) وچ کـالي؛ ۲) تودۀ او وچه بې اوبو دښته.

**سوککه** (sūkáka) ښځ.م. يو ډول گياه ده.

**سوکلوک** (sūklúk) نـر.م. هغه سوکلی چې له ړېږدېدو سره يو ځای وي.

**سوکلی** (sūkláy) ص. نـر.م. لټ او ارام خوښـی، اسـانخوښی او عـافيت طلبه سړی، اسـتراحت غوښتونکی (سړی).

**سوک موک** (sūkmū́k) ق. سوټ بوټ، دا کليمه هغه چاته استعمالېږي چې ناست وي او ځان يې سره ټول او راغونډ کړی وي.

**سوکه**(۱) (sawká) ق. ورو، کرار، په دمه دمه.

**سوکه**(۲) (swáka) ښځ.م. سوکی، سوی لرگی.

**سوکی**(۱) (swakáy) نر.م. سوزنکی، سيځونکی، يو ډول بوټي دی.

**سوکی**(۲) (sū́kay) نر.م. گوتخند، په ببهډيو کې يو ډول لوبه ده.

**سوکي** (sukí) ښځ.م. تنگونه، ضيقونه، دا کليمه د نوکي د کليمې سره يو ځای راځي.

**سوکۍ** (sawkáy) ښځ.م. ځوانکه، د ځوانۍ دانه.

**سوکي موکي** (sukímukí) نـر.م. په پټه سـره څوک په څو کسو تړنه، وهنه او مطلب ورڅخه اخيستنه.

**سوگ** (sog) نر.م. پرخه، شبنم.

**سوگت** (sūgát) ص.نر.م. ممسک، بخيل، سوگړ.

**سوگل** (sawagál) نر.م. دحبوباتو توپاله، پوستکی او ... چې د ايشېدلو په وخت د دېگ پر سر راشي.

**سوگلونی** (sūglúnay) کنگر، پيلو، يو ډول ځيږه، سپکه او خلا لرونکې تيږه ده.

**سوگله** (sūgalá) ښځ.م. سوگل، سوگلی، سوگلی، يو ډول څرمني پاپوش دی.

سوګلی (sūgláy) ښځ.م. و ګ. سلګی ۱).
سوګند (sawgánd) نر.م. قسم، لوړه.
سول (swál) مص. ل. ۱) شول، کېدل؛ ۲) مص. مت. سوځل، سوځول.
سول(۲) (sol) نر.م. ۱) عقل، سد، هوش؛ ۲) په الکمي (د منځنیو پېړیو کېمیا) کې: سره زر؛ ۳) م. د پخوانیو رومیانو د لمر خدای.
سول(۳) (sul) نر.م. زیات حرص، ډېره تمه او حرص.
سولاغ (sulā́ğ) نر.م. داغ، نښان، تپی.
سولاغه (sawlāğá) ښځ.م. و ګ. سلواغه.
سولتوک (swaltúk) نر.م. پرپری، شپېتی، سوتکه، د جوارو تش وږی، تانته.
سولت (sulát) ص. نر.م. سنت شوی، ختنه شوی.
سولګر (sūlgár) ا. کمپیوټر، رایانه.
سولند (swáland) ص. نر.م. سولاند، څوسن، حریص، څوسمار، توسن.
سولندتوب (swalandtób) نر.م. سولندوالی، سرابښتوب، څوسن توب، حریصتوب.
سولنده (sulánda) ښځ.م. شپله، مانده، خوږ، شست.
سولو (soló) ص. نر.م. ۱) مو. په یوازې سر سندره ویونکی یا د کومې آلې ږغوونکی؛ ۲) هغه پیلوټ چې یوازې الوتکه په هوا کوي.
سولول(۱) (swalawál) مص. مت. سرابښول، تحریصول، څوسمارول.
سولول(۲) (sulawál) مص. مت. ۱) میل، منبل؛ ۲) زدویل، زدوول؛ ۳) ایسته کول، لېرې کول؛ ٤) خرابول، له کاره ایستل.
سوله(۱) (sóla) ښځ.م. صلح، روغه، جوړه؛ ۲) د جګړې ختمولو موافقه او تړون؛ ۳) خاموشي، چوپه چوپتیا؛ ٤) څپره، څارغای، څپری.

سوله(۲) (sūla) ښځ.م. حرص.
سوله(۳) (sáwala) ښځ.م. کباب، وریته.
سوله بوله (sólabóla) ق. بې علته، بې سببه.
سولی (sūláy) نر.م. هغه څټک چې زرنده پرې تېره کوي.
سولي (sūlí) ص. نر.م. څوسمار، حریص، سرابښ.
سولی(۱) (sūláy) ښځ.م. دار، غرغره، غرغره.
سولی(۲) (soláy) ښځ.م. ۱) سېلی، تند باد؛ ۲) د شوتلو په څېر یو نبات دی.
سولېدل(۱) (swaledál) مص. ل. ۱) څوسېدل، تپېدل؛ ۲) بې ستړه دچا په دوډۍ ورګډېدل.
سولېدل(۲) (suledál) مص. ل. ۱) منبل کېدل؛ ۲) زدویل کېدل، زدوول کېدل.
سولیز (solíz) ص. د سول (عقل) اړوند، عقلي، منطقي.
سولیس (sulís) نر.م. (لو.) د بیجلو یو ډول لوبه ده چې سري سلطان هم ورته وایي.
سوم (sūm) نر.م. ۱) سم، سپم، د ستنې سوری، د ستنې سپم؛ ۲) سوری.
سوما (somā́) نر.ج. هوما، ډېر مشهور وابښه چې په پښتو کې د «اومه» او یهما، اوم، هوم، په بڼو شته.
سومباتور (sumbāṭawár) ص. نر.م.ج. سومبور، کوناټور، د غټو کوناټو خاوند.
سومباټی (sumbāṭáy) نر.م. ۱) کوچنی سوری؛ ۲) کوناټی.
سومباخه (sumbāxá) ښځ.م. بسومبته، کونه، مقعد، سومبی.
سومبخوړپ (sumbaxwráp) نر.م. یو ډول لوبه ده.
سومبروغی (sumbroğáy) نر.م. دریچه، کوچنی سوری، سومبری.

سومبل (sūmbə́l) مص. مت. نېزه وهل.
سومبلکار (sumbəlkā́r) نـر.م. ج. سمبلخانه، يو ډول زهر دي.
سومبه (sumbá) ښځ.م. ۱) د توپ د ميل پاکـولـو آله؛ ۲) خپه؛ ۳) مج. تېروتنې؛ ٤) هغه آله چې فلز ورباندې سوري کېږي.
سومبی (sumbə́y) ښځ.م: دوبره، کونه، غره.
سون[1] (swan) نر.م ۱) سونګ، سوځېدنه، احتراق؛ ۲) د سوځېدلو مواد.
سون[2] (sun) نر.م. خوا، پلو، لوري، طرف.
سونا (sonā́) ښځ.م. و ګ. سونه.
سونات (sunā́t) نـر.م. مـو. سـورنت، سـناته، د موسيقۍ يو فورم دی.
سونار (sunā́r) نر.م. سنار، زرګر.
سوناري (sunārí́) ص. نب. طلايي رنګ.
سونتوکي (swantókí́) ا. سونکتوکي، د سونګ مواد، بالڼ.
سونټی (sūnṭáy) ص. نر.م. بې لاسه او بې پښو.
سونجه (sūnjá) ښځ.م. بيابان، ميره، دښته.
سونځ (sunǰ) ص. نر.م. وېروونکی، بېرووونکی.
سوندخ (sūdáx) نر.م. و ګ. صندوق.
سوندر[1] (swandár) نر.م. و ګ. سخوندر.
سوندر[2] (sundár) نر.م. سندر، سيندور، سندور؛ شنګرف، د نقاشۍ او خطاطۍ يو ډول سره پوډر دي او هندوان پر تندي باندې تيکه پرې وهي.
سونده (sūndá) ښځ.م. بدګماني.
سوندی (sūndáy) نر.م. يو ډول سارانی بوټی دی.
سونډ (sunḍ) نر.م. ۱) سند، کـتـان، کنف، سـوڼ؛ يو ډول بوټی دی چې له اليافو څخه يې توکر او له پوټکي څخه يې رسۍ جوړېږي؛ ۲) شونډ، زنجفيل.

سونډک (sūndák) نر.م. و ګ. شونډک.
سونډک مونډک (sundákmundák) نر.م. انډکان، د کب د مياشتې څو وروستۍ ورځې چې يخ بادونه په کې چلېږي.
سونډمونډ (sundmúnd) ص. نر.م. چپ، غلی، ساکت، پټه خوله.
سونډه (sū́nda) ښځ.م. و ګ. شونډه.
سونګ (swáng) نر.م. ۱) سوځېدنه؛ ۲) سوی، سوزش.
سونګتوکي (swangtókí́) و ګ. سونتوکي.
سونګټ (sungát) ص. نر.م. ۱) کاک، د اور په خوړلو پخه شوې ډوډۍ؛ ۲) ترينګلی، بروس؛ ۳) غريب، بې اوازه ژړا.
سونګټ مونګټ (sūngwáṭmūngwáṭ) ق. يو څوک بېخي نيولی او خپه ناست.
سونګل (sūngál) مص. ل. ۱) په نـري اواز ژړل؛ ۲) د سپي نري اوازنه.
سونګن (sūngán) ص. نر.م. چونګن؛ هغه سپی چې د لوږې په وخت کې نري اوازونه باسي.
سونګوټ (sūngwáṭ) ق. غـونج منج او راټول.
سونګور (sūngór) نر.م. سونګوری، ګلخوره، په يوناني طب کې يو کارېدونکی بوټی دی.
سونګه[1] (sū́nga) ښځ.م. ۱) پـوزه، سـرمـه؛ ۲) چيته پزه، پيته پوزه.
سونګه[2] (songá) ښځ.م. ورسک، د غره پوزه، د غره وتلې برخه.
سونګهار (sungahā́r) نـر.م. ۱) په پـوزه کې د ژړا اواز؛ ۲) د سپي چونګېدل.
سونګی (sungáy) ص. نر.م. ۱) تيتکی، لنډی سری؛ ۲) بوچ، هغه څوک چې پـوزه يې غـوڅـه شوی وي؛ ۳) مج. شرمېدلی؛ ٤) بوچی، بوټی.

سونګی (sūngáy) نر.م. کاشین، خاورینه لویه کاسه، د اوږو اغږلو خاورینه تغاره.

سونګېدل (sūngedál) نر.م ۱) په پوزه کې ژړل؛ ۲) سپي د لوږې یا تږلو په وخت سونګیدنه.

سونلرګي (swanlargí) ا. د سونګ لرګی، خس، بالن.

سونه (soná) ښځ.م. یو ډول سارانی هیلۍ ده.

سونی (sonáy) ص. نر.م. بوچی، هغه پسه چې په طبیعي ډول واړه غوږونه لري.

سوڼ (sūṇ) نر.م. ۱) و ګ. سونډ؛ ۲) په پزه کې د هوا کشولو اواز.

سوڼخېل (sawaṇxél) نر.م. کډوال، کوچیان.

سوڼکی (sūṇkáy) نر.م. سوڼهار، د پوزې اواز.

سوڼل (sūṇál) مص. مت. سوڼول، سوغول، د پزې سوخ کول، د پزې سوڼ کول.

سوڼن (sūṇán) ص. نر.م. سوړن، درواغجن.

سوڼوړ (swṇwár) ص. د سونګ وړ، سوځېدونی.

سوڼول (suṇawál) مص. مت. سوغول، سوڼل، د پزې سوڼ کول، پوزه سوڼل.

سوڼه (sawáṇa) ښځ.م. پېغله.

سوڼهار (suṇahā́r) نر.م. سوڼهاری، د پزې اواز.

سوڼی (sūṇáy) ص. نر.م. هغه سړی چې د سا وېستلو په وخت کې ډېر سوڼېږي.

سوڼې (sū́ṇe) ښځ.ج. باتې، دروغ، لاپې شاپې.

سوڼېدل (suṇedál) مص. ل. د خوب په وخت کې د پوزې له لارې د هوا کشولو او ایستلو اواز.

سووان (sūwán) ص. نر.م. اسان.

سوونکی (suwū́nkay) فا. مف. نر.م. سوونی، د سون، هغه څه چې د سوځلو وړ وي.

سووه (suwá) ښځ.م. شته، شبت، شبیت، سنداب البر، راز یا نج کاذب؛ یو ډول ګیاه ده.

سوه [1] (swa) ښځ.م. ۱) د آس، خره او کچر سم؛ ۲) نر.م. سوی، سوزش.

سوه [2] (sawá) عد. ۱) د سل جمع؛ ۲) ښځ.م. سوی، سویه.

سوه [1] (sowá) ښځ.م. ښکلا، سینګار، ډول.

سوها [1] (sohā́) ص. ښځ.م. ۱) ګتمور؛ ۲) یو ډول پخوانی توکر.

سوها [3] (suhā́) نر.م. (مو.) سوهو، بهیر راګ یو ټُتر (بارج) دی سنپورن ګنل کېږي.

سوهاګن (sohāgán) ص. ښځ.م. ښکلې او ګرانه (ښځه)، په زړه پورې (ښځه)، ناوې.

سوهان (suhā́n) نر.م. و ګ. سوان [1].

سوهانه (sohānā́) ښځ.م. اسانتیا، اساني.

سوهړه (suhə́ra) ښځ.م. بې ډبه او بې لارې خبره، بې ربطه خبره.

سوهني (sohaní) ښځ.م. (مو.) سوني، د سري راګ د پټرو د اتو بارجاوو څخه یوه ده.

سوهېدل (sohedál) مص. ل. ۱) کړېدل، نولېدل؛ ۲) زړه سولېدل، زړه اوبه کېدل.

سوی [1] (sway) نر.م. سوزش، سوخت، درد.

سوی [2] (sáway) ص. نر.م. ۱) ایرې شوی، سوخته، جلیا؛ ۲) مج. په قهر.

سوی [3] (s(o,u)y) نر.م. سوه، سویه، تي لرونکی ژوی دی چې د لیپوریدا له کورنۍ څخه دی.

سوی اغزی (soyağzáy) نر.م. یو ډول اغزن بوټی دی.

سوېټ (swéṭ) نر.م. سویت، سوټ، رشته، لړۍ؛ د سازي کمپوزېشن یو پخوانی فورم دی چې له یو لړ نڅاوو څخه جوړ دی.

سوېچ (sw(e,i)č) نر.م. د برېښنا تنۍ یا بټن.

سوېښل (swešál) مص. مت. لوشل، لوسل.

سوی غالی (soyğā́lay) نر.م. سوغالی، د سوی غار.

سویکه (soyáka) ښځ.م. خانی، سارانی مورک.

سویل (sawél) نر.م. سوهیل، سهیل، جنوب.

سویلی (sawelay) ښځ.م. وګ. سهیله.

سویه[1] (sawiyá) ښځ.م. ۱) برابر، یوشان؛ ۲) راستي، برابري.

سویه[2] (soyá) ښځ.م ۱) میسه، نوی راشین شوی کښت؛ ۲) سوی، سوه.

سه[1] (sa) امر. شه، د (سول) له مصدر څخه اشتقاق شوی امر دی.

سه[2] (sah) ښځ.م. وګ. سهه.

سها (sahā́) ښځ.م. ۱) د یو ډول مخصوص جامې نوم دی؛ ۲) نر.م. ستورکی، ری خور.

سهار (sahā́r) نر.م. ګهیځ، سحر، سبا.

سهارسبا (sahārsabā́) سپین سبا، روڼ سبا.

سهارسترګه (sahārstárga) ښځ.م. روڼه سترګه، د سهارستوری.

سهارنی (sahāranáy) نر.م. د سهار، په سهار پورې اړوند.

سهارویښی (sahārwíṣay) سهار پاڅېدونکی، سهارخېز.

سهام (sahā́m) نر.ج. د سهم جمع، په ګډ مال کې د شریک برخه.

سهامي (sahāmí) ص.نب. ونډیز، د سهم، په سهم اړوند.

سهانا (sahānā́) ښځ.م. (مو.) شهانه؛ دمېګ راګ یو پټر دی.

سهاند (sahā́nd) ص. نر.م. سهند، زغمونکی.

سه برګه (sıbargá) ښځ. م. یو ډول شپېلۍ دی چې سپېرې او برګې پاڼې لري.

سه تار (sıtā́r) نر.م. وګ. ستار[1].

سه تاو (sıtā́w) نر.م. سخور ټوپک، یو ډول پخوانی چقماقي اوږد ټوپک دی.

سهل (sahál) مص. ل. ۱) زغمل، تېرول، هضمول؛ ۲) ص. نر.م. اسانه، بې تکلیفه، بې زحمته.

سهل انګاري (sahalangārí) ښځ.م. سترګې پټونه، له سره تېرونه، بې پروایي.

سهلی (sahálay) مف. نر.م. هضم شوی، زغملی، ګاللی، تحمل شوی.

سهلېدل (sahledә́l) مص. ل. زغمېدل، هضمېدل، ګالل کېدل.

سهم (sáham) نر.م. ۱) برخـه، ونـډه، ۲) حق. په مال الشرکه کې د شریک برخه.

سهمیه (sahmıyá) ښځ.م. ۱) برخه، ونډه، سهم؛ ۲) یوعدد یا ټاکلې برخه؛ ۳) اق. کوټه.

سهنګ (saháng) نر.م. زغمنه، ګالنه، تحملونه.

سهنه (sahána) ښځ.م. سهنګ، زغمنه، ګالنه.

سهواً (sahwán) ق. په خطايي، په ناپامۍ، په غلطۍ، په سهوه کې.

سهولت (sahūlát) نر.م. ۱) اساني، بې تکلیفي؛ ۲) اسانونه؛ ۳) نرمي.

سهوه (sáhwa) ښځ.م. ۱) هېرونه، له یاده ایستنه، غفلت؛ ۲) سهو، خطا، ناپامي، تېروتنه.

سهه (sáha) ښځ.م. ۱) سا، ساه، سېلوی؛ ۲) بوی؛ ۳) تناو، طناب؛ ٤) صبر، تحمل، زغم.

سهي (sahí) ص.نب. صحیح، سم، درست.

سهېدل (sahedә́l) مص.ل. زغمل کېدل، ګالل کېدل.

سهیل (suhél) نر.م. ۱) جنوب، سوي؛ ۲) د یوه ستوري نوم.

سهیله (suhéla) ښځ.م. ۱) سوبلی، ملګرې، همزولې؛ ۲) آساني، سهولت.

**سهيلی** (suheláy) ښځ.م. سوېلی، ملګری، همزولی.

**سهيم** (sahím) ص.نر.م.ج. شريک، سهم لرونکی، برخه لرونکی.

**سي** (si) جن. ۱) سبوس، ۲) د مچانو تخم، واړه واړه سپين مچختي، واړه سپين چينجي.

**سې** (se) ښځ.م. د اوښانو او غوايانو د شملولو کليمه ده چې د سې سې په ډول ويله کېږي.

**سيا** (syā) ښځ.م. هغه پړی چې د کبانو د جال کوچنی خاني سره وصلوي.

**سيابند** (syābánd) نر.م. د کوچيانو په اصطلاح هغه سره سيمه چې دوی دوبی په کې تېروي.

**سياځه** (syāǰa) ښځ.م. دوکان، سياڅه، درغې، اواره تېږه چې مسالې ورباندې ميده کوي.

**سياح** (sayāh) ص. نر.م. ۱) سيلاني، ګرځنده، توريست؛ ۲) تعقيبوونکی.

**سياحت** (sayāhát) نر.م. ګرځندويي، سياحي، د وطنو سيل کونګ، توريزم.

**سيادت** (sayādát) نر.م. ۱) لويي موندنه؛ ۲) لويي، غټوالی، ستروالي، شرف.

**سيار** (sayā́r) ص.نر.م.ج. ګرځنده، متحرک، خوځنده، زيات سير کوونکی.

**سيارکي** (syārki) ښځ.م. يو ډول شموخه ده چې په شولو کې راشنه کېږي.

**سيارل** (syārál) مص. مت. ساتل.

**سياره**[۱] (syā́ra) ښځ.م ۱) و.ګ. سابندي؛ ۲) تيګا، د ستريا په علت د ځارويو ژر ژر نفس راښکل.

**سياره**[۲] (sayārá) ښځ.م. ۱) ګرځنده ستوری؛ ۲) کاروان، قافله.

**سياست** (sıyāsát) نر.م. ۱) د خلکو د چارو او سمون او د مملکت د کارونو اداره؛ ۲) په مختلفو تولنو باندې د حکومت کولو فن؛ ۳) مصلحت، تدبير، ٤) ترټنه.

**سياستپوه** (sıyāsatpóh) ص. واګپوه، د سياست ماهر.

**سياستمدار** (sıyāsatmadā́r) ص.نر.م. سياست چلوونکی، هغه څوک چې په سياسي چارو او د هېواد د حکمرانۍ په امورو کې پوه وي.

**سياستوال** (sıyāsatwā́l) ص. سياسي غړی، د سياست اړوند.

**سياسه** (syāsá) ښځ.م. ژورغاښی، جودان.

**سياسي** (sıyāsí) ص. نب. ۱) د سياست، په سياست پورې اړوند؛ ۲) هغه څوک چې سياست کوي.

**سياسيون** (sıyāsiū́n) نر.ج. د سياسي جمع، سياستمداران، هغه خلک چې ښه قضاوت کوي

**سياق** (sıyā́q) نر.م ۱) نظم، ۲) لاره، طريقه، چلند؛ ۳) ډول، توګه؛ ٤) سبک؛ ٥) د کلام اسلوب؛ ٦) د عثماني سلاجقه وو د وخت يو ډول خط و.

**سيال**[۱] (syāl) نر.م ۱) مخی، برابر، انډول؛ ۲) ج. م. د ځمکې د قشر د يوه ويش نوم دی.

**سيال**[۲] (sayā́l) ص. نر.م.ج. ۱) روان، ۲) جاري؛ ۳) رواني اوبه.

**سيالتوب** (syāltób) نر.م. مقابله، مسابقه، ورروالی، برابروالی.

**سيالټ** (syālát̩) نر.م. ټول، تمام، ګرد، ګرده.

**سياله** (syāla) ښځ.م. ۱) د سيال مؤنث شکل؛ ۲) دمه، ارام، ۲) د دمې ځای.

**سيالي** (syālí) ښځ.م. برابري، رقابت، همسري.

**سيام** (sıyā́m) نر.م. په موسيقۍ کې د يوې راګنۍ نوم دی.

**سيانس** (syāns) نر.م. و.ګ. علم.

**سیانسي** (syānsí) ص. نب. ۱) وګ. ساینسي؛ ۲) وګ. علمي.

**سیانوسیس** (sayānosís) نر. ښځ. م. ج سیانوز، یو ډول ناروغي ده.

**سیانه** (syānā́) ص. نب. چالاکه او خود غرضه (سړی)، هوښیار، چالاک

**سیاه بخت** (syābáxt) ص. نر. م. بدمرغه، بدبخته، بې طالع، بدمرغی.

**سیاهه** (syāhā́) ښځ. م. وګ. سیهه.

**سیب** (seb) نر. م. ۱) سرپناه، د ناستې ځای؛ ۲) سیوری؛ ۳) مج. کوټه، خونه.

**سیبات** (sebā́t) نر. م. دالېز، دهلېز، سبات.

**سیبل** (sibál) مص. مت. هضمول، زغمل، ګالل، تحملول.

**سیپاره** (sepārá) ښځ. م. سپاره، د قرآن مجید د دېرشو برخو څخه هره برخه.

**سیپۍ** (sipáy) ښځ. م. صدف.

**سیپۍ** (sepáy) ښځ. م. کاچوغه، د چایو وړوکې کاشوغه.

**سیټ** (seṭ) ص. نر. م. (ج. سېټان) دولتمن، بډای، شتمن، دولتمند، موړ.

**سیټ** (siṭ) نر. م. ۱) هغه څه چې ناسته باندې کېږي ۲) مرکز، مقام؛ ۳) درجن، درځن؛ ۵) ګروپ، ډله.

**سیټرن** (siṭrán) نر. م. ج. سیټرون، ۱) لېمو، یوه ژیړه او پنډ پوستې مېوه ده ؛ ۲) هغه سیمې، تراپیکه ونه یا بوټی چې دغه راز مېوه کوي.

**سیټروس** (siṭrús) نر. م. ج. سیټرس، ۱) دونو هغه ګروپ چې نارنج، لېمو، لایم یا دغه شان نورې مېوې کوي؛ ۲) شره دغه راز مېوه.

**سیټۍ** (seṭáy) ښځ. م. سېټي، شپېلۍ.

**سیټي لایټ** (siṭiláyṭ) نر. م. سته لایټ، قمر، سپوږمۍ؛ هغه کوچنی سماوي کتلې چې د سیارو پر شا وخوا راچورلي.

**سیجي** (sijí) ص. نب. ۱) سوچه، صحیح النسب، د خالص نسل، ۲) موثق، پوره.

**سیځل** (sežál) مص. مت. سوځل، سول.

**سیخ** (six) ص. نر. م. ۱) سم، مستقیم، نېغ؛ ۲) ډک، ۳) نر. م. هر فلز چې مستقیم او سر یې تېره وي.

**سیخچه** (sixčá) ښځ. م. ۱) د غلوسکنه چې دېوال ورباندې کیني؛ ۲) د تناره د سر نرۍ او سپنه.

**سیخک** (sixák) نر. م. د سر د ویښتو سیخکی، د ښځو د سر ویښتانو د تولولو ستنه.

**سیخکه** (sixáka) ښځ. م. یو ډول د اوسپنې نغرۍ دی.

**سیخل** (sixál) مص. مت. په کښېکودلو او تخته کولو سره ډکول، په زور او فشار سره ډکول.

**سیخول** (sixawál) مص. مت ۱) ډکول؛ ۲) نېغول؛ ۳) برابرول؛ سمول.

**سیخېدل** (sixedál) مص. ل. ۱) ډکېدل، تختېدل؛ ۲) سمېدل، برابرېدل؛ ۳) مخامخېدل.

**سیده** (sidá) ص. نب. نېغ، برابر، سم مستقیم.

**سیر** (ser) نر. م ۱) نصیب، برخه، قسمت؛ ۲) د وزن یو واحد دی.

**سیر** (sayr) نر. م. حرکت، تګ، چکر، حرکت کول.

**سیراب** (serā́b) ص. نر. م. تر اوبو لاندې ځمکه.

**سیرت** (sirát) نر. م. ۱) عادت، کړه وړه، خوی؛ ۲) مذهب، ۳) اخلاق؛ ٤) پرده؛ ۵) طریقه، لاره؛ ٦) سنت.

**سیرځی** (serǰáy) ص. نر. م. وړاندې، مخکې، مقدم، مخ په وړاندې.

**سیرک** (sirk) نر.م. و گ. سرکس.

**سېرکی** (serakáy) ښځ.م. د ځېږی یو ډول تیتنه ونه ده چې کوچنۍ پاڼې لري.

**سېرلی** (serláy) نر.م ۱) ورغومی، د وزې نربچی، ۲) وز، وزګړی؛ ۳) سېلی، د پوځې تومنه..

**سېرلی** (serláy) ښځ.م. سېری، وقفي ځمکه، خیراتي ځمکه.

**سیرم** (sirám) نر.م. ۱) د کولمې تار، د څرمنې تسمه چې پنې ور باندې ګنډي؛ ۲) مج. کلک، ټینګ.

**سېرم** (۲) (serám) جن. سیروم، زرویه، خوناب، یوه طبي مایع ده چې معمولاً د ځینو ژوو له وینو څخه اخیستل کېږي.

**سېرمه** (sermá) ښځ.م. څرمه، چرمه، یو ډول زري نرۍ تسمه ده.

**سېرن** (serán) ص. نر.م. سرزوری (غویی).

**سیرنده** (sirandá) ښځ.م. و گ. سرنده.

**سیروز** (sirūz) نر.م. سیروس، د ځګر سیروس، یوه ناروغي ده.

**سیرولوجي** (sirolojí) ښځ.م. سیرولجي، د سیرمو د استعمال یا خواصو علم

**سېروني** (serūne) ښځ.م. سړه هوا، یخه هوا.

**سېری** (seráy) ښځ.م. ۱) د ښځو د تندي یو ډول ګاڼه؛ ۲) د کښت هغه ځمکه چې په وېش کې نه راځي؛ ۳) نر.م ۱) سېره، شک، ګمان؛ ۲) ص. نر.م. سورن، د سیوري خواته.

**سېري خواره** (serixwārá) نر.ج. په ماموندو کې د ځمکې د وېش په برخه کې هغه دي چې ځمکه یې نه وېشله کېږي.

**سېریال** (seryā́l) ص. نر.م. سریال، ۱) مسلسل، ردیفي، نوبتي، توک په توک؛ ۲) هر ناول، داستان چې توک په توک خپرېږي؛ ٤) موقوته

**سېریز** (seríz) نر.م. سریز؛ سلسله، لړی، ردیف، صف، مجموعه، پرله پسې والی، تعاقب.

**سېزل** (sezál) مص. مت. و گ. سېځل.

**سېزني** (sezní) سیځني، اوږده اوېدلې پټاره ده چې یو ماشوم په اوږني کې وړ باندې تړي.

**سېزونی** (sezūnay) ص. نر.م. ۱) سوځونکی، سېځونکی؛ ۲) سوزکی، د آتشک بوټی.

**سېږګی** (sežgáy) نر.م. سیندرېګی، یو ډول دښتي او غرنی سپین رنګی بوټی دی.

**سېږی** (sežáy) ښځ.م. پولکی، کېږه، کوږ مېخ دی چې پال په کونده کې ټینګوي.

**سیږه** (sižá) ښځ.م. غرنی مېږه.

**سیستم** (sistám) نر.م. ۱) روش، طریقه، لاره، اسلوب، ډول؛ ۲) رشته، لړی؛ ۳) نظام، جهاز.

**سیستماتیک** (sistamātík) ص: نر.م.ج. ۱) منظم، پر ترتیب برابر؛ ۲) سیستم جوړونکی، د سیستم، په سیستم مربوط.

**سېستوډ** (sestód) نر.ج (بیا.) سستودا، سستودیا، پلن چنجیان، کدوداني چنجي.

**سېسنه** (sesána) ښځ.م. هغه بختوره ښځه چې ډېر اولاد زېږوي.

**سیسه** (sisá) ښځ.م. سرپ، سیکه.

**سیسي** (sisí) ص. ښځ.م. بوینه یا بویناکه غوښه.

**سېسې** (sesé) ښځ.م. لو. درې ګی، د بېډیو یو ډول مشهوره لوبه ده.

**سیسی** (sisáy) ښځ.م. یو خړ رنګی، برګه، زرکې ته ورته مرغۍ ده.

**سیغون** (sayğūn) نر.م. و گ. سوغنی.

**سیف** (sayf) نر.م ۱) توره، حربه؛ ۲) یو ډول بحري کب دی چې د تورې په څېر اوږده توڼګه لري، کوسه کب هم ورته وایي؛ ۳) تجری.

**سيفليس** (siflís) نر.م. طب. سفليس، آتشک، اتشک، اوربلک، يوه ساري ناروغي ده.

**سيفون** (sayfū́n) نر.م. کږه يا زانوخمه لوله ده چې اوبه له لوښي څخه بل لوښي ته تېرېږي پکې.

**سېک** (sek) نر.م. قوت، توان، طاقت.

**سيک** (sik) نر.م. سک، سکه؛ هغه څوک چې په سيکيزم عقيده لري.

**سېک ختلی** (sekxatə́lay) ص. نر.م. کمزوری، ناتوانه، کم قوته، ضعيف.

**سېکرټر** (sekarṭár) ص. نر.م. وګ. سکرټر.

**سېک زړی** (sekzáṛay) ص. سخت زړی.

**سيکړ** (saykáṛ) عد. سيکړه، سل، صداً.

**سيکړه** (saykaṛá) ښځ.م. ۱) وګ. سيکړ، ۲) ډله، جمعيت.

**سېکسولوجي** (seksolojí) ښځ.م. جنس پېژندنه، د جنسي مطالعاتو مبحث.

**سېکل** (sekə́l) مص.مت. ټکورول، تودول، ګرمول

**سېکلی** (sekə́lay) مف. نر.م. ۱) ټکور شوی، سېکل شوی؛ ۲) ص. نر.م. بدمرغه، سپېره.

**سيکڼ** (sikə́n) نر.م. ۱) له يوه څيز نه کرکه پيدا کېدل؛ ۲) د يوه شي د ډېرو خوړو له امله زړه توروېدل؛ ۲) ص. نر.م. ضعيف، کمزوری.

**سېکنټ** (sekánt) نر.م. هغه مستقيم خط چې يو منحني په دوو يا زياتو نقطو کې قطع کړي.

**سېکور** (sekawár) نر.م. د زور خاوند، د طاقت څښتن، طاقتور، زورور.

**سيکه** (siká) ښځ.م. ۱) سرپ؛ ۲) شکل، مخ، څېره، بڼه، قيافه، قد و اندام.

**سېکه** (séka) ښځ.م. دريمه، درېيمه برخه، يو په دريمه، يو پر دري ۱/۳

**سيګار** (sigā́r) نر.م. د تمباکو له نغښتلو پاڼو څخه جوړه شوې نلۍ ده.

**سيګرېټ** (sigrét) نر.م. وګ. سګرټ.

**سيګنل** (signál) نر.م. سيګنال، زيګنال، زيګنل، نښه، نخښه، اشاره، علامه.

**سيل** (sayl) نر.م. ۱) ننداره، تماشه؛ ۲) ساتېری، د سازو سرود مجلس.

**سېل** (sel) نر.م. ۱) نهز، سېلاب؛ ۲) زياتې مرغۍ چې يوځای سره الوځي.

**سېلاب** (selā́b) نر.م ۱) نهز، سېلاو؛ ۲) ګر. څپه، هجا، سيلبل، سليبل، تلفظي جز.

**سېلابي** (selābí) ص. نب. سېلابيز، د سېلاب، څپيز، د تلفظي جزء، هجايي، د سلېبل مربوط.

**سېلات** (selā́t) نر.م. باسار، بوڼ، سرسامي، د سرسام ناروغي، يو ډول دماغي ناروغي ده.

**سيلان** (silā́n) نر.م. بهاند، جاري.

**سيلانی** (saylānay,í) ص. نر.م. سياح، ننداره کوونکی، سيل کوونکی.

**سيلاو** (silā́w) نر.م. سړه څپه، يخه سېلۍ.

**سېلاو** (selā́w) نر.م. د سېلاب مفغن شکل.

**سېلاوځپلی** (selāwʒapálay) ص. سېلاب وهلی، نهز وهلی.

**سېلاوه** (selāwá) ښځ.م. لويه چاړه، يوه جارحه آله ده.

**سېلتی** (selatáy) ص. نر.م. سرسام شوی.

**سيلګری** (silagáray) ص. نر.م. وګ. سيله ګر.

**سېلمه** (selmá) ښځ.م. ۱) کورنی؛ ۲) ګاونډی؛ ۳) ګرده، ټول، تمام، له يو سره.

**سېلن** (selə́n) ص. نر.م. توربخن، توروېره.

**سېلنګ** (seláng) نر.م. سياه لنګي، يو ډول ناروغي ده.

**سېلو** (seló) ص. ښځ.م. ۱) د غوا لوشلو یو خاص طرز دی؛ ۲) ښځ.م. گودام، گدام؛ ۱) دغنمو د ساتلو مخصوص ځای.

**سېلوی** (seláway) نر.م. اوسېلی، اسوېلی، سره سا، سوړ اسوېلی.

**سېلوې** (selawé) ښځ.م. سبا، سېلوېي، سلوې.

**سیله** (silá) ښځ.م. پلوي، طرفداري، ننګه.

**سیله گر** (silagár) ص. نر.م. طرفدار، پلوی، پرخوا، ننګه کوونکی.

**سیله هار** (silahā́r) نر.م. نفسک، ستمی، تیګا.

**سېلۍ** (seláy) ښځ.م. هغه پړی چې له وژغنو څخه جوړ شوی وي.

**سیلي** (silí) نر.ج. چوري، بنګړي.

**سیلۍ** (siláy) ښځ.م. ۱) خیلی، توپان، تېز باد، ۲) تباهي، بربادي؛ ۳) باد.

**سېلئ** (sélay) نر.م. ۱) چلتار، ۲) یو ډول مواد دي چې د تندي ورغومي د نامه له غوټۍ څخه یې اخلي او ثمنو شیدو کې وهل کېږي او پوڅه پنېر جوړېږي؛ ۳) یو ډول خوشبویه بوټی دی.

**سیلئ** (siláy) ص. نر.م. مرستی، پلوی، طرفدار.

**سیلیبند** (silibánd) نر.م. ټپک، پوستینچه.

**سیم** (sim) نر.م. فلزي مزی؛ ۱) ارتباط، اړیکی؛ ٤) تص. د ظاهر و باطن پاکونګ.

**سېما** (semā́) ښځ.م. ۱) د .. هوال بېوری؛ ۲) سبب، سرپناه.

**سیما** (simā́) ښځ.م. زیما، د خنکي د قشر په دوو ګونو وېشو کې د یوه وېش نوم دی.

**سیماب** (simā́b) جن. و ګ. پاره.

**سېمایه** (semāyá) ښځ.م. هغه تور رنګ چې له اوسپنځري څخه لاس ته راځي.

**سیمبل** (simbál) نر.م.ج. و ګ. سمبل.

**سیم دوزي** (simdozí) ښځ.م. زرګندي، سرمه دوزي، یو لاسي صنعت دی.

**سېمرغ** (s(e,i)múrğ) نر.م. عنقا، د یوه افسانوي او موهوم مرغه نوم.

**سیمسار**[۱] (simsā́r) نر.م. و ګ. سمساره.

**سیمسار**[۲] (simsā́r) ص. نر.م. ۱) دلال؛ ۲) هغه دوکاندار چې د ښځو د فېشن سامان خرڅوي.

**سیمفني** (simfaní) ښځ.م. سمفوني، سمفني، سنفوني؛ د موسیقي آلاتو د اوازونو هارموني یا هم آهنګي.

**سیمک** (simák) نر.م. ۱) لاره، لویه پخه ستنه چې ښځې د سر د وېښتانو لارې ورباندې باسي؛ ۲) سیخ د اودلو سیخ.

**سیم ګل** (simgál) نر.م. هغه آخېر چې د خاورې، میده شګې او بډه ګال له مخلوط څخه جوړېږي.

**سېمنار** (semanā́r) نر.م. سیمینار؛ ۱) د یوې موضوع په باب (د پوهانو) د بحث او تحقیق غونډه؛ ۲) کنفرانس.

**سیمه** (síma) ښځ.م. منطقه، ناحیه.

**سېمه** (semá) ښځ.م. ۱) و ګ. سپېمه؛ ۲) اسپمه.

**سیمه پال** (simapā́l) ص. سمت پال، سکتارست.

**سیمه څار** (simacā́r) نر.م. هغه مرکز چې د یوې سیمې تولې ګرمې ورپورې تړلې وي.

**سیمه وال** (simawā́l) ص. د سیمې، د منطقې.

**سیمه ییز** (simayíz) ص. نر.م.ج. منطقوي، په سیمه پورې اړوند.

**سیمي** (simí) ص. نب. له سیم څخه جوړ شوی.

**سیمی** (saymáy) ص. نب. سی می؛ ۱) خجل، شرمنده؛ ۲) روغ، جوړ، روغ رمټ.

**سیمیا** (simiyā́) ښځ.م. ۱) د طلسم او جادو فن؛ ۲) چال، شعبده؛ ۳) ننبه؛ ٤) سیمیان، ماچې.

**سيميټ** (simit̩) نر.م. سمنټ، سېمنټ، يوه ماده ده چې اهکي احجارو ته حرارت ورکولو او تکليس څخه لاس ته راځي.

**سېمي کلاسيک** (semiklāsík) ص. نر.م. ج. نيم لرغوني، يو څه لرغوني، نيمچه پخواني.

**سېمي کولن** (semikólan) نر.م. (تن.) ځنډکی، ځنډنښه، ټکی لرونکې کامه، مميزه، نقطه لرونکي وېرګول چې څېره يې داسې (؛) ده.

**سيمينار** (siminā́r) نر.م. و.ګ. سېمنار.

**سين** (sin) نر.م. ۱) د «س» توري اواز او تلفظ؛ ۲) و.ګ. سيند.

**سېن** (sen) نر.م. سلا، مشوره، اتفاق، مصلحت.

**سين ټکس** (sint̩íks) نر.م. (ګر.) نحوه، د نحوي واحدونو علم.

**سينچه** (sinčá) ښځ.م. ۱) د کارتوس ډکولو آله؛ ۲) اندازه، مېچونی، کنده، مقياس.

**سيند** (sind) نر.م. سيند، رود، درياب.

**سيندک** (sindák) ص. نر.م. ننبه وېشتونکی، هغه سړی چې ښه ننبه ولي.

**سيندګی** (sindgáy) نر.م. د سيند مصغر، کوچنی سيند يا درياب، قاموس.

**سيندلاو** (sindlā́w) نر.م. سګ لاوو، سګ لاهو، داوبو سپی.

**سيند مشر** (sindmə́šər) نر.م. امير البحر، د بحري قواوو لوی صاحب منصب.

**سيندنی** (sindanáy) ص. نر.م. سندنی، بحري، د سيند، دريابي: ۱) سيندنی ستوری، اوښن ستهار؛ ۲) سيندنی خيار: يو ژوی دی چې اسکلېټ نه لري.

**سينډی** (sin̩dáy) نر.م. سېلندی، لاره، پياځه، د ښځو د سر وېښتانو لاره.

**سينګ** (sing) نر.م. مساوات، برابري، توازن، انډول.

**سينګار** (singā́r) نر.م. سنګار، ارايش، ښکلل، ډول، په ګاڼو او جامو ښکلل.

**سينګارځی** (singārǰáy) نر.م. آرايشګاه، د ډولي کولو ځای، د سينګار ځای.

**سينګارول** (singārawə́l) مص. مت. ښکلل، ډولي کول، سنګارېدل، جوړول.

**سينګارېدل** (singāredə́l) مص. ل. ښکلې کېدل، ډولي کېدل.

**سينګاوڼ** (singāwə́n̩) نر.م. د ببېړۍ سکان، د ببېړۍ جپه.

**سينګټه** (singát̩a) ښځ.م. چوړو، بتخک، شخه دو، شبخدو، يو ډول مرغۍ ده.

**سينګړ** (singáṛ) نر.م. کانېز، ډبرېز، ډبرين، هغه ځای چې ډبرې تيږې ولري.

**سينګړی** (singaṛáy) نر.م. سامان الات، باروت داني.

**سينګکه** (singáka) ښځ.م. خړانګه، خړانه، خړۍ، يوه کوچنۍ خړه مرغۍ ده.

**سينګڼ** (singə́n̩) نر.م. ۱) سور باد، سيکڼ، يخه هوا؛ ۲) سپېره، منحوس، بدمرغه.

**سينګۍ** (singə́y) ښځ.م. ډوول، سګ ماهي.

**سينما** (sinamā́) ښځ.م. سېنما ۱) دخوځندو تصويرو تياتر؛ ۳) د فلم د ښودلو ځای، نندارتون.

**سينماټوګرافي** (sinamāt̩ogrāfī́) ښځ.م. د خوځندو تصويرو د جوړولو هنر، د سينمايي فلمو د تهيه کولو فن، حرکت ثبتونه.

**سينماسکوپ** (sinamāskóp) ص. نر.م. ج. وايډاېنګل، هغه سينما چې پرده يې تر معمولي پردو يو نيم واري غټه وي.

**سینوال** (sinwā́l) ص. نر. م. د سیند، سین ته منسوب په سیند اړوند.

**سینوسی** (sinósay) نر. م. میرگن، جوړیان، یو ډول ښکاري مارغه دی.

**سینه** (siná) ښځ. م. ۱) صدر، ټټر، دنس پاسنۍ برخه؛ ۲) تص. د علم صفت.

**سینه باز** (sinabā́z) نر. م. یو ډول غرنۍ مرغۍ ده.

**سینه بغل** (sinabaǧál) و گ. ذات الریه.

**سینه بند** (sinabánd) نر. م. ۱) پټور، تانګ، د بارګیر (خره او . .) پرسینه راتاوېدونکې ریتاړه ۲) ټټرۍ، کرېلی، د ښځو واسکټ.

**سینه داغی** (sinadā́ǧay) ص. نر. م. ۱) ډېرخپه، غمجن؛ ۲) هغه څوک چې اولاد یې مړ وي.

**سینه سوخته** (sinasoxtá) ص. نب. سینه سوی ځیګرخون، جګرسوی، جګرخون.

**سیني** (siní) ښځ. م. ۱) ښانک، د ډوډۍ خوړلو لوی لوښی؛ ۲) غتېه مجمه.

**سینچه** (sinčá) ښځ. م. و گ. سینچه.

**سیو** (siw) نر. م. رطوبت، نم، نو، زېم، لوندوالی، نمجنتوب.

**سېوده** (siwdá) ښځ. م. لحد.

**سیوران** (siwrā́n) نر. م. چترۍ، سایه وان.

**سیورن** (syorán) نر. م. ۱) سیوری لرونکی؛ ۲) هغه څیز چې په سیوري کې وچ شوی وي.

**سیوری** (syóray) نر. م. ۱) سوری، سایه، سیېره؛ ۲) مج. حمایه، ساتنه.

**سیوسیو** (siwsíw) نر. م. چوغکې (چنچنې) ته ورته یو ډول خړه مرغۍ ده.

**سیوک** (siwák) نر. م. ۱) نیم سوی، نیم سوخته لرګی؛ ۲) ډنګر ماشوم چې په پوره اندازه د مور شیدې نه وررسېږي.

**سیوکی** (siwákay) نر. م. ۱) د سیوک مصغر، د لګول شوي لرګي یوه ټوټه، نیم سوخته لرګی، سوکی.

**سیول** (sayawál) مص. مت. زغمل، تحملول، صبرکول، سهل.

**سیه سوز** (syahsóz) نر. م. هغه ژمنۍ سره (امبار) چې ډېرۍ شوې وي.

**سیهه** (sihá) ښځ. م. سیه، سیاهه؛ ۱) نوم لیکنه؛ ۲) یادښت، یاداشت.

**سیهي** (sihí) ښځ. م. سیاهي، سیایي، تورکی.

**سیېدل** (sayedál) مص. ل. سهېدل.

**سییک** (siyák) نر. م. ۱) ترمېږې لوی او تور لمې ته ورته حیوان دی؛ ۲) دژمي څو ټاکلې ورځې.

**سییکه** (sayíka) ښځ. م. هغه تونډ باد چې د باران څاڅکي هم ورسره وي.

**سیین** (siyán) نر. م. توربخن، تور وزمه، توروېره، تور وشمه.

**سییه** (siyá) ص. نب. هغه هلک یا نجلۍ چې مور یې مړه شوې وي.

**سییی** (siyí) ص. نب. په نښه، تشخیص، نښاني، په دماغ کې ساتل شوی.

# ش

**ش** [1] (šin) نر.م: د پښتو الفبې درويشتم توری دی. ابجدي ارزښت يې (۳۰۰) دی.

**ش** [2] (šin) مخفف، دهجري شمسي کال لنډون دی.

**شا** (šā) ښځ. م. ۱) څټ، اوستربل، د مخ مقابل؛ ۲) نر.م. و گ. شاه.

**شاب** (šāb) نر.م. ستو، لوغده، ستووه، پېښ قبضه، يو ډول جارحه وسله ده.

**شاباز** (šābā́z) نر.م. ۱) د ښځې د سر کوڅې کړي وېښته؛ ۲) زخه، مضراب؛ ۳) د غاړې دځنډې خامک،

**شابازي غاړه** (šabāziğā́ra) ښځ. م. شاباسي غاړه؛ يو ډول غاړه ده چې په ميده خامک او ښاخلو سره جوړېږي.

**شاباس** (šābā́s) نر.م. (ج. شاباسي) آپرين، آفرين. شاباش؛ دهڅونې او ستاينې کليمه.

**شابوشی** (šābóšay) ښځ.م. يو ډول بوټی دی چې زېړ خوشبويه گل کوي.

**شابوکی** (šābū́kay) ص. نر. م. شاکوپی، کوپ، ټيټا، شاکړوپی، ډوړای، کوتار، شاټوغی.

**شابېل** (šābél) نر.م. (ج. شابېلونه) غشی، شتی؛ تېره څوکی غشی.

**شاپ** (šāp) نر.م. ۱) د کوچنيانو د قبض ماتولو لپاره يوه وسيله ده؛ ۲) حربه؛ ۳) کارغی.

**شاپرشنجی** (šāparšánjay) ق. ۱) شا په تخته، سمتبک، ستوني ستغ؛ ۲) مخالف، پرخلاف.

**شاپړنگه** (šāpṛangá) ښځ. م. يو ډول ځنگلي بوټی دی.

**شاپور** (šāpū́r) نر.م. شازی، شاهپور، شازاده، شهزاده، پاچازوی.

**شاپه شا** (šāpəšā́) ق. ۱) د «مخامخ» ضد؛ ۲) مرور، خوابدی؛ ۳) پټ، په پټه.

**شاپې** (šāpé) ښځ. ج. د «لاپې» له کليمې سره د (لاپې شاپې) په توگه او د باتو او لاپو په مانا کارېږي.

**شاپيانګه** (šāpyánga) ښځ. م. ښاپيانګه، شدوپی، بو شيدي لرونکی بوټی دی چې ژېړ ګل کوي.

**شاپيتی** (šāpítay) نر. م. غوابيږی، کارغه پسکی، کپسی، قپسی، حلزون.

**شاپېټی** (šapetáy) نر. م ۱) هدف، سيپی، سيپ؛ ۲) پر شا باندې دوړلو بار.

**شاپېری** (šaperáy) ښځ. م. ج. و ګ. ښاپېری.

**شاپينپيکو** (šapinpikó) ښځ. م. د کوچنيانو يو ډول لوبه ده.

**شات** (šat) جن. ګبينه، ګبين، انګبين.

**شاتر** (šatar) نر. م. شاطر: ۱) ځيرک، هوښيار؛ ۲) چابک، چالاکه: ۳) جلبي، خدمتګار.

**شاتره** (šatará) ښځ. م. شوتره، پاپړه، شاهتره، يو ډول تريخ بوټی او ګياه ده.

**شاتګ** (šatág) پر شا تګ، رجعت، عقب نشيني، قهقرا، قهقرايي.

**شاتګپال** (šatagpā́l) شاتګواله، رجعت پسند.

**شاتګواله** (šatagwā́la) شاتګپاله، رجعت پسندي.

**شاتماغه** (šatamāğá,a) ص. ښځ. م. نخره بازه، نخره کوونکې، مکېز کوونکې، قنجې.

**شاتنی** (šatanáy) ص. ښځ. م. وروستنی، تر شا، ترځنې؛ د ټولو تر شا.

**شاتوت** (šatū́t) نر. م. ج. شاه توت؛ يو راز توت دی رنګ يې توربخون سور يا تک سور وي.

**شاتوری** (šatóray) ص. نر. م. ۱) بې ځله حيوان؛ ۲) بې بسترې کټ.

**شاته** (šát(a,a)) ق. ۱) ترشا، څټ ته، د شا لوري ته: ۲) مج. ماته، ماتې، شکست.

**شاته کول** (šatakawál) مص. مت ۱) په شا کول، شاته وهل؛ ۲) اهميت نه ورکول؛ ۳) په مزل کې وروسته پرېښودل؛ ۵) هېرول.

**شاته کېدل** (šatakedál) مص. ل. ۱) وروسته کېدل؛ ۲) دچا مرسته پرېښودل؛ ۳) پښېمانېدل.

**شاتير** (šatír) نر. م. بش. شاتيره، غراسکی، وېشه، غټ تير.

**شاټ** (šāṭ) نر. م. (سين.) د يوې صحنې ترکيب او کمپوزيشن.

**شاټپول** (šaṭapawál) مص. مت. ۱) شا پسې ورکول؛ ۲) پارول، لمسول: ۳) مج. دعا ورته کول.

**شاټوغتوب** (šaṭuğtób) نر. م. کړوپ والي، ټوغوالي، د ملا کړوپ والي، شاټوغوالي.

**شاټوغی** (šaṭū́ğay) ص. نر. م. کړوپ، کوپ، ډوډای، ډډی، شاکړوپی، شاټيغی.

**شاټيټي** (šāṭuṭí) ښځ. م. و ګ. شاټوغتوب.

**شاټينګول** (šaṭingawál) مص. مت. مرسته کول، ملاتړ کول، پره کول.

**شاټينګه** (šaṭínga) ښځ. م. شاټينګی، ټوسکی، ټينګه، ټونګی، کوډرک، سنګدان.

**شاټينګی** (šaṭíngay) ص. نر. م. مرستيال، مرستوال، کومکي، مددګار، ملاتړ.

**شاټينګي** (šaṭingí) ښځ. م. ملاتړنه، ملاتړ کول، مرسته، ننګه.

**شاجور** (šājór) نر. م. ججوره، ججوری، جاغور، د ټوپک ججوره.

**شاځلمی** (šāǰalmáy) نر. م. و ګ. شازلمی.

**شاځه** (šā́ǰa) ښځ. م. شازه، شياځه: ۱) هغه پلنه تيږه چې د قبر سر او پښو ته يې دروي؛ ۲) همداسې تيږه چې د لحد د پټولو لپاره اېښودله کېږي.

**شاخ** (šāx) نر. م. و ګ. ښاخ.

**شاخص** (šāxís) ص. نر. م. ۱) راوتلې برخه؛ ۲) هغه سترګې چې نه رپېږي ۵) هغه نښه چې عسکر د رسمي تېرېدنې يا تعليم په وخت کې

هغې ته په رارسېدو سره د سلامی لپاره سر گرځوي.

**شاخک** (šaxák) نر. م. ۱) وړوکی ښکر؛ ۲) هغه ښکر چې په هغه سره وینه ایستل کېږي.

**شاخل** (šaxál) نر. ج. د حبوباتو له کورنۍ څخه دی چې د څارویو د خوراک لپاره کرل کېږي.

**شاخله** (šaxalá) ښځ. م. څانگه، ښرانگه، شاخچه.

**شاخېل** (šaxél) ص. نر. م. ۱) رببزی، جاروکښ؛ ۲) شاه خېل. دواده په شپه د زوم دلورې خلک.

**شادو** (šādó) نر. م. وگ. بیزو.

**شادي** (šādí) نر. م. وگ. بیزو.

**شاډوله** (šāḍóla) ښځ. م. ۱) د کوچنیانو یو ډول لوبه ده؛ ۲) یو راز گډا ده.

**شاډیندک** (saḍindák) نر. م. زنگېده، ټال خوړل، په ټال کې زنگېده.

**شاذ** (šaz) ص. نر. م. ج. ناویاته، نادر، کمیاب؛ هغه څه چې لږ پیدا کېږي.

**شار** (šar) نر. م. د جارو یو ډول بوټی دی.

**شاربل** (šarbál) مص. مت. ۱) منبل، مږل، له مستو څخه کوچ او تروې ایستل: ۲) مج. یوه خبره ډېره سره پیچل، اوږدول او سپینول.

**شارتي** (šartí) ښځ. م. شاتي، شارتي؛ ۱) جرقه؛ هغه بخرکی چې د دوو برېښنا لرونکو سیمانو له تماس څخه پیدا کېږي؛ ۲) مج. قهر، غوسه

**شارتېدل** (šarṭedál) مص. ل. شاتېدل، شارتېدل؛ ۱) د برق په سیمونو کې شارتي پیدا کېدل؛ ۲) مج. عصبي کېدل.

**شارحه** (šarhá) ښځ. م. وگ. سپړنې.

**شارژدافیر** (šarždāfér) نر. م. سیاسي چارواکی، ناظم الامور، د مختار وزیر نایب.

**شارع** (šaríʔ) نر. م. ۱) د شرعي څښتن، لارښود؛ ۲) لاره، لویه لاره.

**شارگر** (šargár) نر. م. پ. ک. شاعر، سندرغاړی، مجلسي، سندرېول، بدل زن، شاری ویونکی.

**شارو** (šaró) ښځ. م. وگ. ښارو.

**شاره دا** (šaradā́) ښځ. م. ج. په اتمې میلادي پېړۍ کې د یوه رسم الخط نوم و.

**شارۍ** (šaráy) ښځ. ج. شېرۍ، شورۍ، شاعرۍ، مجلس؛ فی البدیهه شعر ته شارۍ وایي.

**شارېزی** (šarézay) نر. م. داسې دېوال چې له ټول ښار څخه چاپېره تاو شوی وي.

**شاري گر** (šarigár) نر. م. مجلسي، شاعر، هغه شاعر چې هم شعر وایي او هم سندرې.

**شاړ** (šaṛ) ص. نر. م. ج. ۱) شړ، بې حاصله، نا آباد. شنډه ځمکه؛ ۲) مج. لټ، سست؛ ۳) بې ادبه، بې تعلیمه.

**شاړپاړ** (šaṛpā́ṛ) ص. نر. م. ج. ۱) شړپړ، شاړشپاړ، بې حاصله؛ ۲) مج. لټ؛ ۳) بې ډبه، بې ادبه؛ ۴) بې تعلیمه، بې کسبه.

**شاړتوب** (šaṛtób) نر. م. شړتوب، شړوالی، شنډتوب شاړتیا، شاړوالی.

**شاړول** (šaṛawál) مص. مت. ۱) شړول، بې حاصله کول، شنډول؛ ۲) بې ادبه کول؛ ۳) لټول، سستول ۴) بې تعلیمه کول، بې کسبه کول.

**شاړه** (šā́ṛa) ښځ. م. ۱) لمېره، لموړه، د بام د غاړې موړه؛ ۲) د شاړ مؤنث.

**شاړی** (šā́ṛay) ص. نر. م. ۱) لټ، کاهل، مټ، تمبل؛ ۲) زردالو، وگ. شاړي.

**شاړي** (šā́ṛi) ښځ. ج. هغه زردالو چې بمبته یې ترخه وي.

**شاړېدل** (šāṛedál) مص. ل. ۱) شنډېدل، شړېدل، له حاصله لوېدل؛ ۲) لټېدل؛ ۳) بې ادبه کېدل؛ ۴) بې تعلیمه کېدل.

**شـاړې واړې** (šaṛewáṛe) ص. نب. ۱) ګډوډ، بې ترتیبه؛ ۲) لټ؛ ۳) بې ادبه، بې بنده.

**شازادګی** (šazādagáy) ښځ. م (ج. شازادګۍ) شازادۍ، شهزادګی، شهزادۍ، د پاچا لور.

**شازاده** (šazādá) نر. م. (ج. شازادګان) شهزاده، باچا زاده، د پاچا زوی.

**شازلمی** (šazalmáy) نر. م. میړنی زلمی، ناوس، زوم‌ودګری.

**شازه** (šāzá) ښځ. م. (ج. شازې) و ګ. شاځه.

**شاستر** (šastár) نر. م. ۱) د حکمت علم؛ ۲) مو. د موسیقي اساسي کتابونه.

**شاطر** (šāt(i,a)r) نر. م. و ګ. شاتر.

**شاعر** (šāsír) ص. نر. م. (ج. شاعران) ۱) لاتوړل، چندي، شعر ویونکی، شعر جوړوونکی؛ ۲) مج. سندرغاړی، سندربول.

**شاعرانه** (šāsırāna) ق. د شعر، د شاعرۍ، په شعر پورې مربوط.

**شاعروزمه** (šasırwázma) ص. نر. م. شاعرډوله، شاعرنما، متشاعر.

**شاعري** (šasirí) ښځ. م ۱) شعر ویل، شعر جوړونه، د شعر ویلو فن یا هنر؛ ۲) مج. خیال پردازي.

**شاغوت** (šağót) نر. م. ګوته، کون ګوتي، اته، ګوته ورکول.

**شاغوتول** (šağotawə́l) مص. مت. شاغوت کول، ګوته ورکول، ګوتې کول، اته ورکول.

**شاغوتی** (šağotə́y) ښځ. م. یارمخچې، یو ډول سارانی خړه کوچنۍ مرغۍ ده.

**شافع** (šāfís) ص. نر. م. شفاعت کوونکی، سپارښت کوونکی، سفارش کوونکی.

**شاقول** (šāqúl) نر. م. شاول، ښاول؛ یوه آله ده چې د دېوال سموالی او کږوالی په کې څرګندېږي.

**شاقه** (šāqá) ص. نب. ستونزمن، سخت، ګران، درونډ.

**شاک** (šāk) نر. م. و ګ. شوک[۲].

**شاکاسه** (šākāsá) ښځ. م. لـویه مسي کاسه، د المونیم لویه کاسه.

**شاکر** (šākír) ص. نر. م. ۱) شکر کښونکی، شکر کوونکی؛ ۲) خوښ، رضا، راضي.

**شاکرک** (šākarák) نر. م. یو ډول خوږ نیات دی، دوه تېغونه لري.

**شاکړوپ** (šākṛúp) ص. نر. م. شاکوپی، شاکړوپی، ډوډی، شاتوغی، شاکوپ، شاتېتی.

**شاکلا** (šākalā́) ښځ. نر. م. ۱) ابرا، تېرېدنه، تېری، له حق العبد څخه تېرېدنه؛ ۲) توبه!.

**شاکلنګه** (šakulánga) ښځ. م. کرکری، یو ډول ډېره غټه او پیاوړې زانه ده.

**شاکوکی** (šakokáy) ښځ. م. د کوچنیو نجونو یو ډول لوبه ده.

**شاکول** (šakawə́l) مص. ل. ۱) شا اړول، شاګرځول؛ ۲) توجه نه کول؛ ۳) مج. بې پروایي کول.

**شاکونډۍ** (šakunḍə́y) ښځ. م. یو ډول غرنی وړوکی ناک دی.

**شاکي** (šakí) ص. نب. شکایت کوونکی، ګیله من.

**شاګرځ** (šagárǰ) امر عس. شاګرس! په عسکرۍ کې یو قومانده ده.

**شاګرد** (šagárd) ص. نر. م. زده کوونکی، متعلم، طالب، محصل، هغه څوک چې د کوم فن، کار یا هنر د مهارت له څښتنه زده کړه کوي.

**شاګردانه** (šagardāná) ښځ. م. ۱) هغه پیسې چې رانیوونکی یې شاګرد ته د بخشش په توګه ورکوي؛ ۲) لېکی، چونګی.

**شاګردي** (šagardí) ښځ. م. زده کړه؛ د استاد تر لاس لاندې کار کول.

**شاګرځول** (šagərǰawə́l) مص. مت. شا اړول، په کار کې لټي کول، کار پرېښودل.

**شاګزی** (šagazáy) نر.م. د اوږدوالي د واحد یعنې ګز له درېیو ولونو څخه یو ډول دی.

**شاګوړی** (šagúṛay) نر.م. ۱) هغه ټوکر چې د کمیس شاته اچول کېږي؛ ۲) د خرو د کتې موږه.

**شاګوم** (šagúm) نر.م. و ګ. شګوم.

**شاګی** (šagáy) نر.م. د ښځینه کمیس شاته له غاړې څخه ترملا پورې ټوټه.

**شاګی** (šagáy) ښځ.م. ۱) غونډی، پوټی، خټ؛ ۲) د غره لمنه؛ ۳) یوه تخته ځمکه؛ ٤) هدیره.

**شال** (šal) نر.م. (ج. شالونه) د ښځو ورین پړونی، د ښځو نفیس ټیکری.

**شالکی** (šalakáy) نر.م. کوچنوټی شال، ورکوټی شال، د شال مصغر.

**شالګول** (šalagawə́l) مص. مت. ۱) رااچول، په غېږه کې ستوني ستغ ځملول؛ ۲) مغلوبه کول؛ ۳) دمه کول، ډډه لګول.

**شالمی** (šalmáy) ښځ.م. ۱) هغه فلزي مرۍ چې ښځې یې د لستونو پرڅنډو باندې ګنډي؛ ۲) یو ډول خامک، یو راز ګنډون.

**شالمۍ وټی** (šalməywáṭay) نر.م. مشکنیو وټی، د ټوکر یو ډول ګردی ځونډی دی چې ګرد چاپېره یې مرۍ ګنډلې کېږي او ښځې یې د کمیس په ټټر پورې ګنډي.

**شالنګ** (šaláng) نر.م. رټنه، شړنه، بېکاره کول، له کاره لېرې کول.

**شالنګول** (šalangawə́l) مص. مت. ۱) رټل، شړل، ګوښه کول؛ ۲) ټالول، ځنډول.

**شالنګېدل** (šalangedə́l) مص. ل ۱) رټل کېدل، ګوښه کېدل؛ ۲) معطله کېدل، ځنډېدل.

**شالوری** (šalóray) نر.م. شاته، شا و خواته، د شا لورته.

**شالوګی** (šalogáy) ښځ.م. چرچره، یو ډول چنچنه ده، یو راز چوغکه ده.

**شالولکی** (šalolakáy) نر.م. هغه مېږی چې وزر یې کړی وي.

**شالید** (šalíd) نر.م. شا ځمکه، پس منظر، زمینه.

**شالیزاره** (šalizára) ښځ.م. شنولګره، هغه ځمکه چې شولې په کې کرل کېږي.

**شامت** (šamát) نر.م. ۱) بخت، طالع؛ ۲) برخه، نصیب؛ ۳) نحوست، سپېره والی.

**شامتوره** (šamatóra) ښځ.م. ځاښکه، یو ډول توره مرغۍ ده.

**شامخه** (šamáxa) ښځ.م. و ګ. شموخه.

**شامدام** (šamudám) ق. تل، همېشه، هر وخت.

**شام کلیان** (šamkalyán) نر.م. مو. یو راګ دی.

**شامکی** (šamakáy) ښځ.م. یو ډول مرغۍ ده چې په اوبو کې ډېره پیدا کېږي.

**شامل** (šamíl) ص. نر.م. ج. ۱) داخل، ګډ، شریک ۲) په کې؛ ۳) خپرېدونکی، محیط.

**شاملول** (šamılawə́l) مص. مت. داخلول، ګډول، شریکول، یو ځای کول..

**شاملۍ** (šamláy) ښځ.م. د یوې غرنۍ ګیاه نوم دی.

**شاملېدل** (šamıledə́l) مص. ل. داخلېدل، شریکېدل، ګډېدل، یو ځای کېدل.

**شامن** (šamə́n) نر.م. (تا) شمن، د آسیا د شمال او اروپا د اوولنو کاهن یا کشیش یا جادوګر، د ډبرې د لرغوني دورې د عصر مذهبي ښوونکي چې دم او ورانډوینې به یې کولې.

**شامنيزم** (šamanízəm) نر.م. د شامني عقايدو پيرو.
**شامه** (šamá) ښځ. م. د شامې حس، د وږم حس، د انسان له (۲۲) حسونو څخه يو حس.
**شامي** (šamí) ښځ. م. ماښامنی؛ ۳) نر.م. وررږلی، د ټکېدلو غوښو يو ډول کباب دی.
**شامۍ** (šamə́y) ښځ. م. ج. ۱) مړيستون، قبر؛ ۲) يو ځايي يا ډله ييز قبر.
**شان** (šan) نر.م. ۱) پرتم، دبدبه؛ ۲) قدر، مرتبه؛ ۳) د خوشخطۍ وروستی پړاو؛ ۳) اد. څېر، ډول، غوندې، راز.
**شانتاژ** (šantáž) نر.م. ۱) چل، چم، خطا ايستنه؛ ۲) حق السكوت (بليک ميل).
**شانته** (šánta) ښځ. م. ۱) د اوبو بند، د اوبو تړ؛ ۲) ډکه، شنډۍ، شانډۍ.
**شاندار** (šāndā́ra) ص. نب. پرتمين، پرتم لرونکی، عظمت لرونکی، د شان-شوکت څښتن.
**شانډوله** (šānḍóla) ښځ. م ۱) څوځه، د خرواو اسانو د پښو يوراز ناروغتيا ده؛ ۲) اوړونکی، د کوچنيانو يو ډول لوبه ده.
**شانډۍ** (šānḍay) ښځ. م. ۱) شانتې؛ ۲) ډکه، بندی، شنډۍ.
**شانکر** (šānkár) ص. نر.م. يوه ساري ناروغي ده چې د مقاربت له لارې خپرېږي.
**شانګوړی** (šāngū́ṛay) نر.م. محدب، وتلی ځای، بوک.
**شانګه** (šā́nga) ښځ. م. درې ښاخې، درې ښاخه لرونکی، ښاخې شانګې، ښاخې سکو.
**شانوشانوتيک** (šānušānuṭík) ند. د هلکانو د خوشالۍ کليمې دي.
**شانه وانه** (šānawānā́) ص. نب. په نخروتګ، شانه ورانه، مکېزناکه، خرامان.

**شانې** (šāné) ق. وګ. شانته.
**شانی** (šānáy) نر.م. يو ډول نبات دی.
**شاوخوا** (šawū́xwā́) ق. خوا وشا، چاپېره، ګرداګرد څلورخواوې.
**شاور** (šawár) نر.م. ۱) دوش؛ ۲) المبېدنه، لمبنه؛ ۳) شيندنه، اوږونه؛ ٤) ورېا؛ ٥) څپه.
**شاوړی** (šawaṛáy) ص. نر.م. نېزه وړی، تتونی. سېلاب راوړی، نيز راوړی.
**شاول** (šawál) نر.م. ۱) وګ. شاقول؛ ۲) وګ. جرثقيل؛ ۳) ببلچه، چاري.
**شاولې واولې** (šāwlewā́wle) ص. نب. ۱) هک پک، حيران؛ ۲) شاړې واړې، ګډوډ؛ ۳) سترې ستومانه؛ ٤) متأثر.
**شاه** (šāh) نر.م. (ج. شاهان) ۱) پاچا، باچا، پاسوال، تولواک؛ ۲) ښاوی، د واده په شپه زوم.
**شاهانه** (šāhānā́) ق. شاهي، د شاه، د شاه په ډول.
**شاه بالا** (šāhbālā́) نر.م. هغه کوچنی چې له زوم سره د واده په ورځ د ناوې د پلار کره ورځي.
**شاهد** (šāhíd) ص. نر.م. (ج. شاهدان) ليدونکی، مشاهده کوونکی، ګواه، حاضر.
**شاهدي** (šāhidí) ښځ. م. وګ. شهادت.
**شاهراه** (šāhrā́h) ښځ. م. لويه لاره، عمومي، ستره او اوږده جاده چې مهم ځايونه سره نښلوي.
**شاهرګ** (šāhrág) نر.م. وګ. ښارګ.
**شاهرود** (šāhród) نر.م. وګ. زيتر.
**شاهزاده** (šāhzādá) نر.م. وګ. شازاده.
**شاهزی** (šāhzáy) ص. نر.م. شهزاده، شهزادګی.
**شاهزۍ** (šāhzáy) ښځ. م. پاسوالزۍ، شهزادګۍ، شهزادۍ، شاهدخت.
**شاهکار** (šāhkā́r) نر.م. شهکار، پخه چاره، پوخ کار، څرګنده او ستره چاره.

**شاهکور** (šahkór) نر.م. ارګ، شاهي ماني.

**شاهنامه** (šahnāmá) ښځ. م. هغه منثور یا منظوم کتاب چې د تاریخ د شرحې او ملي داستانو په اړه لیکل شوی وي.

**شاهنشاه** (šahınšáh) ص. نـر.م. امپـراتور، د پاچاهانو پاچا، د شاهانو شاه، ستر تولواک.

**شاهي** (šāhí) ص. نب. ۱) د شاه، پاچا ته منسوب، د پاچا اړوند؛ ۲) پاچايي، تولواکي؛ ۳) ښځ. م. شايي، پنځه پوله.

**شاهي کوټ** (šāhikóṭ) ص. نـر.م. شاهي کلا، شاهي حصار.

**شاهین** (šāhín) نر.م. ۱) ثمین، وتلي لرګی، وتلې ونډه، د ترازو هغه اوږد لرګی چې دواړه پلې ترې راځوړندې وي؛ ۲) نر.م. و ګ. شند.

**شاهي نظام** (šāhinızā́m) ص. نـر.م. تولواکي نظام، پاچاهي رژیم، سلطنتي حکومت.

**شاید** (šāyád) اد. ښـايي، ګـوندې، کېـدای شي، احتمالاً، ممکنه ده.

**شایع** (šāyíʿ) ص. نب. (ج. شایعات) ۱) خـپور، نشر، فاش؛ ۲) ښکاره، څرګند، جوت.

**شایق** (šāyíq) ص. نـر.م.ج. هیله من، مشـتاق، مایل.

**شایي بايي** (šāyibāyí) ښځ. م. ج. مزې چړچې، عیش و نوش.

**شباب** (šabā́b) نر.م. ځواني، زلمیتوب، ځني توب.

**شباهت** (šabāhát) نر.م. ورته والی، یوشان والی.

**شبت** (šıbít) نر.م. ج. و ګ. سووه.

**شبتله** (šabtála) ښځ. م. و ګ. شوتل.

**شبخون** (šabxū́n) نر.م. و ګ. شوخون.

**شبرې** (šabaráy) ص. نر.م. شـوکـور، شپـبغلی، شپـلندر، شبکور.

**شبشي** (šabašé) ښځ. ج. یو ډول خـړ رنګی نبات دی چې څاروي يې خوري.

**شبکه** (šabaká) ښځ. م. ۱) یو سیستم، مجموعه، جونګ، پروژه؛ ۲) سوري سوري شی؛ ۳) ډلـه، څانګه، شعبه؛ ٤) مج. پټه ډلګی.

**شبکیه** (šabakıyá) ښځ. م. ریټینا، د سـترګې عصبي طبقه.

**شبګیر** (šabgír) نر.م. و ګ. شوګیر.

**شبنامه** (šabnāmá) ښځ. م. (ج. شبنامې) و ګ. شپه پاڼه.

**شبنم** (šabnám) جن. پرخه، چنې، شولنګ.

**شبو** (šabó) ښځ. و ګ. شبې.

**شبور** (šabū́r) نر.م. و ګ. شکور.

**شبه** (šabá) ښـځ. م. ۱) یو ډول کـچه (غیـر اصلي) مرغلره ده؛ ۲) ورته والی، په څېر، غوندې.

**شبه جرم** (šıbıjúrm) نر.م. له سرغړونې رامنځ ته شـوی عمل، چې کـوونکی د هغه ضـامن ګـڼل کېږي.

**شبه جزیره** (šıbıjazirá) ښځ.م. و ګ. ټاپووزمه.

**شبه عمد** (šıbıʿámd) نر.م. (فق.) قصد ته ورته، که د جرم فـاعل د اجرا وړ کومې نتیجې قصد وکړي خو د جزا وړ کومه بله نتیجه منځ ته راشي.

**شبه واول** (šıbıwāwál) نر.م (ګر.) نیمواک، نیم مصوت، نیم واول، سیمي واول، هغه کانسوننټ چې د غیر سیلابي واول په توګه ادا کړی شي.

**شبهه** (šubhá) ښځ. م. شبهه، شک، ګومان؛ د کومې چارې نیهام والی.

**شبهه ناک** (šubhanā́k) ص. نـر.م.ج. د شک وړ، مشکوک، د ګومان لاندې، د اشتباه وړ.

**شبی** (šabáy) ښځ. م. ۱) د تبې ډوډۍ؛ ۲) شبو، شوبې، د شبو ګل.

**شبی** (šabáy) نر.م. یو ډول وابښه یا گیاه ده.

**شبیت** (šabít) نر.م. . و گ. سوره.

**شبیه** (šabíh) ص. نب. ورته، غوندې، مشابه، په څېر، په ډول، نظیر.

**شپ** (šap) نر.م. ۱) کور، مېنه؛ ۲) بام، چت، بلې؛ ۳) ص. نر.م. ژور، عمیق؛ ٤) کړشپ، کړشوپ؛ ٥) نر.م. یو مهمل شکل دی. د (گپ) له کلیمې سره د «گپ شپ» په توگه راځي.

**شپانه** (špāná) نر.م.ج. ۱) د شپون جمع؛ ۲) د شپون مغیره حالت.

**شپانه بنۍ** (špānábanáy) ښځ. م. یو ډول غوزه ده چې نورو بوټو پورې نښتې وي.

**شپانه پنډۍ** (špānápanḍáy) نر.م. د مرخېړي په څېر یو نبات دی.

**شپانه پونډۍ** (špānápunḍáy) ښځ. م. یو ډول بوټی دی چې د دورمې په څېر بندونه لري.

**شپانه غود** (spānagód) نر.م. و گ. شپنغود.

**شپره** (špará) ښځ. م. ۱) د لرگي د تورلو لپاره د نجارۍ یو ډول آله ده؛ ۲) یو ډول پاسته وابښه دي.

**شپږ** (špaṛ) ص. نر.م. ۱) شپږگوتی؛ ۲) شاړ، شړ، شنډ.

**شپږبولې** (špaẓbolé) ص. نر.م. شپږ پښیز، شپږو پښو والا.

**شپږتړ** (špaẓtár) نر.م. د نرد لوبه.

**شپږځنډی** (špaẓcánday) ص. نر.م. شپږ اړخیز، شپږ مخی، مسدس، شپږ ضلعي.

**شپږډزی** (špaẓdázay) نر.م. هغه توپک چې جوړه یې شپږ کارتوسه اخلي.

**شپږډزې** (špaẓdaze) ښځ. م. ارتې تمانچه، سرداري تمانچه.

**شپږگوتی** (špaẓgótay) ص. نر.م. شپږ، څوک چې شپږ گوتې لري.

**شپږگوټی** (špaẓgwáṭay) ص. نر.م. شپږځنډیز، شپږو کونجو واله، شپږ ضلعي.

**شپږمخیز** (špaẓmaxíz) ص. نر.م. شپږاړخیز، شپږ کونجی.

**شپږن** (špaẓán) ص. نر.م. ج. سپږن، شپږک، هغه څوک چې د برې سپږې ولري.

**شپږه** (špaẓa) ښځ. م. (ج. شپږې) و گ. سپږه.

**شپږۍ** (špaẓáy) ښځ. م. سپږۍ، سپږکۍ، یوه خزنده چې د غنمو په دانو کې پیدا کېږي.

**شپږیز** (špaẓíz) ص. نر.م. شپږ بیتیز، مسدس. .

**شپشتی** (špáštay) نر.م. د یوې لوبې نوم دی.

**شپنغود** (špangŏd) نر.م. شپنغوده، شپانه غود، یوه مرغۍ ده چې د شپې شپېلکې وهي.

**شپنکی** (špankáy) نر.م. ۱) شپونکی، شپون، ۲) د شپون مصغر.

**شپنه** (španá) ښځ. م. ۱) شپون؛ ۲) د شپون مغیر او مؤنث شکل؛ ۳) یو ډول خوږ وابښه دی.

**شپني** (španí) ښځ. م. شپنتوب، شپون توب، رمه پوونه، د وزو او میږو څرونه.

**شپنی** (španáy) ص. نر.م. شپنی، بېگانی، پاته شونی، ووگنی.

**شپو** (šapó) ښځ. م. شاپو، هیټ خولۍ، کاردینالي خولۍ، یو ډول اروپایي خولۍ ده.

**شپوږک** (špuẓák) نر.م. ج. و گ. شپږن.

**شپول** (špol) نر.م. ۱) کړۍ، حلقه، دایره، هاله؛ ۲) پنډ غالۍ، یاغیل، د ښاروی لپاره د لښتو احاطه؛ ۳) مال بند، اړه، ویره، د ازغیو احاطه.

**شپولغالی** (špolgálay) نر.م. گاچ، شپول، پنډ غالی، د ښارویو لپاره لښتو احاطه.

**شپون** (špūn) نر.م (ج.شپانه) شپنکی، شپونکی.
**شپونتوب** (špūntób) نر.م. شپني، د وزو، پسونو او میږو د پوولو دنده.
**شپونکی** (špūnkáy) ص.نر.م ۱) شپنکی، شپون؛ ۲) د شپون مصغر.
**شپوڼاکه** (špūṇā́ka) ښځ.م. د کالیو یا توکرانو شړیدلی یا خوړین ځای.
**شپه** (špa) نر.م ۱) وګ. شپون؛ ۲) ښځ.م. د ورځې مقابل، له ماښامه ترسبا راختو پورې وخت.
**شپه پاڼه** (špapā́ṇa) ښځ.م. شبنامه، هغه پاڼې چې په پټه د شپې خپرېږي.
**شپه تېري** (špatéray) فا. نر.م. شپه تېروونکی، هغه څوک چې د نورو په کورونو کې شپه تېرول غنیمت ګڼي.
**شپه روڼی** (šparúṇay) ص.نر.م. ۱) شپه لټوونی، شوګیر کوونکی؛ ۲) عابد، پرهېزګار.
**شپه کار** (špakā́r) نر.م. شپه کاری، د شپې کارکوونکی.
**شپه کاري** (špakārí) ص. نر.م. شپني کار، د شپې کار.
**شپه ګرځی** (špagárǰay) نر.م. شپه یوني، د شپې ګرځېدونکی.
**شپه ګرځېدنه** (špagarǰedána) ص. نر.م. د شپې تګ، د شپې ګرځېدنه.
**شپیانه** (špyā́na) ښځ.م. خجالت، شرم.
**شپیانګه** (špyā́nga) ښځ.م. شاپیانګه، ښپیانګه، یو ډول بوټی دی چې خړ رنګې دانې لري.
**شپې پاڼه** (špepā́ṇa) ښځ.م. شپه لیک، شبنامه.
**شپې پوهنځی** (špeohanǰáy) د شپې پوهنځی، د شپې فاکولته.
**شپېتری** (špetáray) نر.م. وګ. شپېشتلکه.

**شپېته** (špetá) ښځ.م. (ج.شپېتې) شپېتې، شپېته، سپېته، د لرګي پانه.
**شپې تېر** (špetér) نر.م. د شپې تېرولو ځای.
**شپېړکی** (šperkáy) نر.م. وګ. شپېلک.
**شپېړنه** (šperána) ص، ښځ. م خ، ن، جتله او بېکاره.
**شپېزر** (špezár) نر.م. ۱) د شپې وروستنی شومه؛ ۲) د شپې د وروستنۍ برخې درمې پوولو وار.
**شپېشتری** (špeštáray) نر.م آخنک، شپېشتې، یو ډول سابه دي.
**شپېښتلکه** (špeštaláka) ښځ.م. شپیتری، شپیشتکه، خودرویه شپیشتی (رشقه).
**شپیشتي** (špiští) نر.ج. رښکه، رشقه.
**شپېښتی** (špeštáy) ښځ.ج. د ځرځېږه او دندانه.
**شپې ښوونځی** (špeṣowanǰáy) مکتب، شپې لیسه.
**شپېلغی** (špelǧáy) ص. نر.م. ۱) وګ. شبری؛ ۲) نر.م. دیوه سارانې مرغه نوم دی.
**شپېلک** (špelák) نر.م. شپېلکی، شپېړکی، شپېلی، شپېلان، شپولاک، چرچری.
**شپېلکه** (špeláka) ښځ.م. وګ. تولکه.
**شپېلکی** (špelkáy) ښځ.م. ج. یوه وړه اله ده چې په اواز کې د خولې شپېلۍ ته ښه خي ورته ده.
**شپېلل** (špelál) مص. مت. شپېلول؛ ۱) په خوله غاښونو او ګوتو سره راښېلول او خوړل؛ ۲) د سا کښلو په مرسته د خوړلو شی راکښل او خوړل؛ ۳) مص. ل. شپېلک وهل.
**شپېلندر** (špelandár) ص. نر.م. ۱) وګ. شوکور؛ ۲) شپېلندو، شپولندر، شپېلۍ وهونکی.
**شپېلندو** (špelandū́) ص. نر.م. شپېلۍ وهونکی، شپېلۍ غږوونکی، شپېلک کوونکی.

**شپېلول** (špelawə́l) مص. مت. ١) و گ. شپېلل؛ ٢) مج. د يو چا مال او شته خوړل.

**شپېلۍ** (špelә́y) نر.م. ١) شپېلک؛ ٢) شپېلک وهنه، شپېلکی کول.

**شپېلۍ** (špeláy) ښځ.م. ١) د غوږ د ننه سوری؛ ٢) تولکه، توله، نی، فلوټ، د موسيقي يوه‌ پو کېدونکې آله ده؛ ٣) د ټوپک ميل.

**شپېلۍ مار** (špelaymā́r) ص. نر.م. شپېلۍ وهونکی، شپولندر، توله وهونکی.

**شپېنی** (špenáy) ص. نر.م. و گ. شپنی.

**شت** (šat) نر.م. ١) سوچ، سيچکی، شتکی، شوت، دگوتې په اشارې سره پر او ور معلومونه؛ ٢) ق. شړت، په تېزۍ سره، په تلوار سره تلنه.

**شتا** (šatā́) ص. نب. شتاه، شتې، لچر، لچړ، شرير.

**شتاب** (šitā́b) نر.م. بيړه، تلوار، تېزي، جلتي.

**شتاتوب** (šatātób) نر.م. شتاوالی، شتايي، شرير والی، شريرتيا، لچرتوب، بې حيايي.

**شتام** (štām) نر.م. ټاپه، مُهر.

**شتامبۍ** (štambáy) ښځ.م. ژغورگی، بغری، وره بغرۍ، آغوږ.

**شتاوه** (šatā́wa) ص. ښځ.م. شتاهه، شتايه، کاسيره، کنچنۍ، فاحشه.

**شترکه** (šuturáka) ښځ.م. خوړناکه، شترکې، خوټخوټۍ چينه.

**شترمار** (šuturmā́r) نر.م. يو ډول غټ مار دی.

**شترمرغ** (šuturmúrg̃) نر.م. ډينگ، اوښ مرغۍ، اوښ مرغه، يو غټ مرغه دی.

**شتري** (šuturī́) ص. نب. ١) اوښين، د اوښ له ورېو جوړ شوی؛ ٢) د اوښ د ورېو په څېر رنگ.

**شتک شتک** (štakšták) ص. نر.م. ډريب، ډيو ډيو، غوبي ته په غوا باندې د خېژولو غږ.

**شتکه** (štáka) ښځ.م. هغه لښته چې کوچنيان پرې گاټې ولي.

**شتکی** (šátkay) نر.م. سيچکی، شت سچ، شوت، شيچ، سوچ، پرويشتنه.

**شتلې** (šatále) ښځ.ج. لتې، لغتکې، شتلکې، پرتکې، شتلکې، پرکېدنه.

**شتمن** (štamán) ص. نر.م.ج. و گ. پانگه وال.

**شتمني** (štamaní) ښځ.م. ١) شته منتوب، بډايي، ٢) سرمايه داري، شته، دولت، مال.

**شتومی** (štū́may) نر.م. ١) شتومبی، مولی، چومبی؛ ٢) د اونگ لاستی.

**شته**[١] (šta) نر.ج. ١) پانگه، دارايي، هستي، جايداد؛ ٢) ف. سته، دی، دي.

**شته**[٢] (šatá) ښځ.م. و گ. سووه.

**شته کړنه** (štakṛána) ښځ.م. پنځول، پيدا کول، شته کول، خلقول، تخليق.

**شته والی** (štawā́lay) نر.م. موجودوالی، سته والی، موجوديت.

**شتۍ**[١] (šatáy) ښځ.م. ١) پيين، يوه سپينه مرغۍ ده؛ ٢) و گ. شتا.

**شتۍ**[٢] (štay) ښځ.م. ١) پرپری، شېتۍ، توکه، غوتۍ؛ ٢) د چونگښو کور؛ ٣) په ځمکه کې کوچنی کيندل شوی ځای.

**شتۍ**[٣] (sitáy) ښځ.م. ١) شېتۍ، توبرۍ، د جوارو د وږي هغه برخه چې دانې پرې نښتې وي، غښتۍ، غشی، تير؛ ٢) تبلۍ، شېتۍ، لښه.

**شتېمۍ** (štemáy) ښځ.م. ١) شتامبۍ، بغرۍ؛ ٢) مولی، د پښو پايکو د لرگي په سرکې غونده منډه تيره، پايکو کانی.

**شتېر** (šatár) نر.م. (عک.) د وړانگو کرکۍ، د رڼا درځه، په خونه کې يوه ځانگړې کړکۍ ده.

شټل (šaṭál) ص. نر.م. ج. و ګ. شړل.
شټوپ (štop) نر.م. و ګ. ستوپ.
شټه (šaṭa) ښځ. م. سيټه، سوټکه، د جوارو غوټه چې پوستکی ولري.
شټېدل (šaṭedál) مص. ل. ارغوچکې وهل، شټلکې وهل، لغتکې وهل، پړقېدل.
شجاع (šujā́ʔ) ص. نر.م. ج. زړن، زړور، دلاور، د زړه خاوند، شجيع.
شجاعت (šujāʔát) نر.م. زړورتيا، زړورتوب، دلاوري، له اخلاقي ښېګڼو څخه يوه ده.
شجره (šajará) ښځ. م. سجره، نسب، نسب نامه، د نسب سلسله، شجرة النسب.
شجري (ليک) (šajari(lík)) نر.م. (خ.) يو راز ښکلاييز (تزييني) رسم الخط دی چې ثلث ليک يا محقق ليک ته شکل ورکوي.
شځرلی (šacárlay) نر.م. و ګ. ترښځ.
شځړلی (šcáṛalay) نر.م. څولی، اسکنه، د ترکانۍ يوه آله ده.
شحم (šáham) نر.م. ج. (ج. شحميات) وازده، وازګه؛ شحم له حيواناتو او نباتاتو څخه لاس ته راغلې غوړه ماده ده.
شحمي (šahmí) ص. نب. /نر. ښځ. م. ج. د شحم، وازګين، د غوړو، د تېلو.
شخ (šax) ص. نر.م. ج. ۱) کلک، سخت؛ ۲) څېبر؛ ۳) لک، درېدلی، نېغ.
شختولی (šaxtólay) نر.م. يو ډول وربښمينه جالۍ ده چې د واده په وخت کې يې د ناوې په پښو کې دننه اچوي.
شخړ (šxaṛ) نر.م. د الوتونکو لوی سيل.
شخړه[۱] (šaxáṛa) ښځ.م. ۱) لانجه، جنګ، جنجال؛ ۲) يرغل، بريد؛ ۳) پنګه، دچارې تناب.
شخړه[۲] (šxáṛa) ښځ.م. خوسابوی، بدبوی، ناوړې بوی، بدبويي، د مردار شي بوی.
شخړه ييز (šxaṛayíz) شخړن، نانډريز، متنازع فيه، لانجن.
شخص (šaxs) نر.م. (ج. اشخاص) سړی، فرد، يو کس، تن، د انسان بدن.
شخصاً (šáxsan) ق. په خپله، هماغه شخص، يوازې شخص.
شخص پرستي (šaxsparastí) ښځ.م. شخصيت پالنه، د يوه کس احترام ساتنه.
شخصي (šaxsí) ص. نب. خپل، د ځان، ځانته، ځانګړی، خصوصي، د يوه کس.
شخصيت (šaxsiyát) نر.م. سړيتوب، شرف، د يو چا د يو لړ اخلاقي عناصرو جوړښت.
شخکۍ (šaxkáy) ښځ. م. جوشېدونکې، جوش لرونکې، خوټېدونکې، ايشېدونکې.
شخلی[۱] (šaxláy) نر.م. خرغوله، د اوري په ځېر يو ډول ګيا ده چې وړې وړې دانې کوي.
شخلی[۲] (šxúlay) نر.م. و ګ. شخولی.
شخلي (saxaʔí) نر.ج. يو ډول ډېر خواږه انګور دي.
شخنتتۍ (šxantatáy) ښځ.م. شمشتۍ، شکرتتۍ، کاسه ګرب، کيشپ، کشپ.
شخنه (šxáṇa) ښځ. م. (ج. شخنې) مفصل، د هډوکې بند.
شخواټ (šaxwā́ṭ) نر.م. د ماشومانو يو ډول لوبه ده.
شخوده (šxodá) ص.نب. نوکارې شوی، شونګارې شوی، په نوکانو ګرېدلی.
شخور (šxor) نر.م. کلکه شوې شګه، قتقانۍ.
شخول[۱] (šxwál) نر.ج ۱) شور، غوغا؛ ۲) د مرغانو چغهار؛ ۳) کشوړه؛ ٤) غم، خپګان.

**شخول**(٢) (šaxawə́l) مص. مت. ١)نښول، لګول، درول؛ ٢)کلکول.

**شخولی** (šxwálay) نـر.م. ١)د غشو کڅوړه؛ ٢)طبراق، د مسافر ګوډی؛ ٣)شخلی.

**شخوند** (šxwánd) نر.م. سخوند، شخوند وهونکی حیوانات چې خپل خواړه نیم ژوولي تېروي او بیا يې بېرته خولې ته راګرځوي او ژويي يې.

**شخوند وهونکی** (šxwándwahúnkay) نـر.م. واښه خوړونکي حیوان لکه غوا، پسه، اوښ، وزه، مېږه او نور.

**شخېدل** (šaxedə́l) مص. ل. ١)جګېدل، درېدل، لګېدل؛ ٢)کلکېدل، سختېدل.

**شد** (sad)ص.نر.م ١)ټینګ، کلک، سخت، استوار؛ ٢)نر.م. تشدید، د صرف او نحوې په اصطلاح داسې یوه نخښه ده(ّ)؛ ٣)پرتم؛ ٤) ځیږوالی.

**شداوه** (šdáwa) ښځ.م. شلاوه، یو ډول ګیا ده چې د دریاب په تل کې شنه کېږي.

**شدت** (šıdát) نر.م. ١)سختي، فشار؛ ٢) قهر، خوشکه؛ ٣)تېزي؛ ٤)قوت.

**شدرو** (šadráw) نـر.ج. د ښځو ځوږ، د ښځو غالمغال، د ښځو غوږېږ.

**شدوپی** (šadopáy) ښځ.م. ١)چکۍ، شین ټټکه، شېدوپی، یو ډول واښه دي؛ ٢) دهقانکه، یو شنه، خړه، وړه برګه مرغۍ ده چې اوږده لکۍ لري.

**شدیاره** (šudyára) ښځ.م. ١)ترکر د مخه یېوه شوې ځمکه، شودیاره، شیدیاره.

**شدید** (šadíd) ص. نـر.م.ج. ١)کلک، ټینګ؛ ٢)توند، تېز؛ ٣)قوي.

**شډل** (šaḍál) ص. نر.م.ج. ١)نا توړل شوی، ځیږ؛ ٢) ناراسته، لټ؛ ٣)بې باره ډنـډوری؛ ٤)بې ډبه، بې ادبه؛ ٥) چټل، ناولی.

**شډلتوب** (šaḍaltób) نر.م. ١)ځیږوالی؛ ٢)بې حاصلوالی؛ ٣)سستوالی، لټي؛ ٤)ساده ګي.

**شډله** (šaḍála) ص.ښځ.م ١)ځیږه؛ ٢)بې حاصله، بې باره؛ ٣)سسته، ټنبله.

**شر**(١) (šar) نـر.م. فساد، پسات، فتنه، بدي، د خیر نقیض.

**شر**(٢) (š(a,u)r) نر.م. ١) شـر، د اوبو د تویېدو اواز؛ ٢)غړپ، غورپ، چښنه.

**شراب** (šarā́b) جن. ١) د چښلو شـی، مشروب؛ ٢)می، خمر، نبیذ، د خرما، انګورو ... اوبه چې تخمیري شوې وي او چښل يې نشه راولي.

**شراب خانه** (šarābxānā́) ښـځ.م. ١)متیران، بډالخۍ، میخانه.

**شرارت** (šarārát) نر.م. ١)فساد، پسات، شر، فتنه؛ ٢)شر و پسات اچونه.

**شرافت** (šarāfát) نـر.م. ١)شـریفوالی، شریف کېدنه؛ ٢) لويي، ستروالی، لوی والی.

**شراکت** (šarākát) نر.م. شریکېدنه، ګډون، برخه یا ونډه اخیستنه.

**شرایط** (šərāyít) نر.ج. د شرط جمع، و.ګ. شرط.

**شربت** (šarbát) نر.م.ج.جن. خوږوبی، خوږې شوې اوبه، له مېوو ایستل شوې اوبه.

**شربل** (šarbə́l) مص. مت. و.ګ. شاربل.

**شرپ** (šrap) صوت. نـر.م. شـړپ، شر، د اوبو د تویېدلو اواز.

**شرپسند** (šarpısánd) ص.نـر.م. شـري، شـر خوښوونکی، شریر، شرغوښتونکی.

**شرپهار** (šrapahā́r) صوت. نر.م. شـرپا، شـرپی، شرپا، د څپېړې یا د لښتو د وهلو غږ.

**شرت وشپاړس** (šurtušpāṛás) نر.م.ج. خواره واره، ګډوډ، پاشان، متشتت.

**شرح** (šárha) ښځ. م. ۱) تشريح، بيان، تفسير؛ ۲) پرانيستل، خلاصول؛ ۳) پراخول.

**شرر** (šarár) نر.م. سپرغۍ، سپيرمهغۍ، سپنکی، بڅرکۍ، د اور وړه ذره.

**شرشاهي** (šaršāhí) ښځ. م ۱) شېرشايي، د پخوا وختو د تول يو وړوکی مقدار چې له ۱٤ گرامو سره معادل و؛ ۲) لږ؛ ۳) د يوې سکې نوم.

**شرشر** (šūršúr) نر.م. شور شور، شر شر، شرهاری؛ د اوبو د پرله پسې توييدلو يا بهېدنگ اواز.

**شرشره** (šəršará) ښځ. م. جـروبی، څـروبی، جوړ جوړی، زاوه، آبشار.

**شرشوبنده** (šaršobánda) ښځ. م. سرسوبنده، شوبله، پشوگۍ، زنځه، څنځه (وگ. زنځه).

**شرط** (šart) نر.م. (ج. شرطونه، شرايط) ۱) داو، پيمان، قـرار، الـزام؛ ۲) حـالـت، موقـعيت؛ ۳) تړ، گرو.

**شرطنامه** (šartnāmá) ښځ. م. شرطپانه، عهدنامه، لوزنامه، قرارداد پانه، ژمنپانه.

**شرطي** (šartí) ص. نب. نـر. ښځ. م. ج. ۱) شـرط والا؛ ۲) د شرط، په شـرط اړوند؛ ۳) د شـرط بيع (د قطعي بيع مقابل).

**شرع** (šarʿ) ښځ. م ۱) لاره، طريقه؛ ۲) دين، مذهب، قانون. (وگ. شريعت).

**شرعاً** (šarʿán) ق. د شرعې له مخې، په شريعت سره، د دين، مذهب، قانون او ايين له مخې.

**شرعي** (šaraʿí) ص. نب. نر. ښځ. م. د شريعت، د شرعې، د دين، په شرعې يا شريعت اړوند.

**شرغشی** (šarğášay) نـر.م. کوړکه، شلغشی، کالي، کهې ته ورته يو ډول ساراني وابښه دي.

**شرغندويه** (šarğondoyá) ښځ. م. اوری، توريک، د شړشمو په څېر يو ډول نبات دی.

**شرغوبل** (šarğobál) ص. نـر.م. اورلگاوی، اړودوړ، گډوډي، شخړ.

**شرغه** (šarğá) ص. نـر.م. هغه آس چې تندی او سترگی يې سپين ويښتان لري.

**شرف** (šaráf) نر.م. ۱) لويي، عـزت؛ ۲) حيثيت؛ ۳) پت، ابرو؛ ٤) د نسب لوړوالی.

**شرفه** (šurfá) ښځ. م. دکتاب د لومړي مخ چاپېرد طلاو لاجوردو تزيينات.

**شرق** (šarq) نر.م ۱) ختيځ، لمرخاته؛ ۲) هغه سيمه چې دغه لور ته پرته وي.

**شرقي** (šarqí) ص. نب. نر. ښځ.م. ختيځ، د شرق، په شـرق اړوند، هـر هغه څـه چې په ختيځ اړه مومي.

**شرک** (šírak) نـر.م. ۱) برستن، تلتک، کنځر؛ ۲) کفر، لـه خدای سره شريک پيدا کونگ.

**شرکت** (širkát) نر.م. ۱) گډون، شريکېدنه، ونډه اخيستـنه؛ ۲) اق. کمپـنۍ.

**شرکتي** (š(ı,a)rkatí) نر. ښځ. م. ج. ۱) دشرکت، په شرکت اړوند؛ ۲) گډون کوونکی.

**شرم** (šárəm) نر.م. (ج. شـرمونه) ۱) وايه، حـيا؛ ۲) ناموس؛ ۳) مج. سپکاوی؛ ٤) پ. ک. هغـه تاديه چې د مـلامت لـه خـوا هغه چـاتـه ورکـوله کېږي چې تېری پرې پرشوی وي.

**شرمبۍ** (šrambáy) ښځ. م. تولگۍ، کـونجۍ، د شلومبو دځېنلو نخش لرونکی لوښی.

**شرمجن** (šarəmján) ص. نـر.م.ج. شـرمناک، شرمگير، شرم کوونکی، حيا لرونکی.

**شرمښ** (šarmáṣ̌) نـر.م. لېوه، سـپې تـه ورتـه يو وحشي حيوان دی.

**شرمښ ببـډۍ** (šarmaṣ̌bedáy) ښځ. م. د لېوه ببډۍ، د لېوه بجله.

**شرمښکی** (šarm(a,u)ṣkáy) ښځ. م. چرمښی، کږمیځار، شرمشکی، مار ته ورته خزنده چې ځلورپښې او اوږده لکۍ لري.

**شرمګیر** (šarmgír) ص. نر. م. ج. شرمناک، حیاناک، حیادار، شرمجن.

**شرمندتیا** (šarmındtyā) ښځ. م. شرمینتیا، شرمېدنه، شرم او خجالتیا، شرمنده توب.

**شرمنده** (sarmındá) ص. نب. خږ. ملامت، پیکه، خجل، خږسترګی، خجالت شوی.

**شرمول** (šarmawə́l) مص. مت. ۱) خږول، خجالتول، شرمنده کول؛ ۲) دیوچا په ناموس او عفت تېری کول.

**شرمېدل** (šərmedə́l) مص. ل. ۱) شرم و حیا پرې غالبه کېدل؛ ۲) بې آبه او بې پردې کېدل.

**شرمینګي** (šarmingí) ښځ. م. شرمنده ګي، شرم و حیا شرمېدنه.

**شرنګ** (šráng) ص. نر. م. د فلزاتو یا ښیښه یي شیانو د لګېدلو اواز.

**شرنګانی** (šrangānáy) نر. م. جرنګانی، زنګوله، ګینګړی، شرنګاوو، شرنګنی، جرنګانی.

**شرنګهار** (šrangahā́r) صوت. نر. م. شرنګا، شرنګهاری، شرنګی، د فلزاتو د لګېدلو غږ.

**شرنګی** (šrangáy) ص. ښځ. م. هغه اسپه چې سر زورې وی او ومنډې ته یې تهول ځان ربړدي او د سر ځنډلو په وخت کې کیزې شرنګوي.

**شرنګېدل** (šrangedə́l) مص. ل. شرنګېدل، د فلزي یا ښیښه یي شیانو د لګېدلو په اثر اواز وتل.

**شرو شور** (šarošór) نر. م. غالمغال، ځوږ، شور وځوږ، غورېږ.

**شروع** (šurōʿ) ښځ. م. ۱) پیل، سر، پیلونه، لاس پورې کول؛ ۲) و ګ. سریزه.

**شرونه** (šarawána) ښځ. م. و ګ. خنجک[2].

**شرونه ژاوله** (šarawána ẓāwla) ښځ. م. د شروني کنډ، دخنجک د ونې کنډ..

**شرهار** (šarahā́r) نر. م. صوت. جرهار، جړهار، شړهار، د اوبو د توېېدو پرله پسې اواز.

**شری** (šáray) نر. م. سری، شیری، سرخکان؛ د کوچنیانو یوه معموله ناروغي ده.

**شري** (šarí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) پساتي، فسادي؛ ۲ ښځ. م. یو ډول توکر دی.

**شریان** (šəryā́n) (ج. شریانونه، شرائین) رګ: هغه رګونه چې له زړه څخه تازه وینه د بدن نورو برخو ته رسوي.

**شریپه** (šaripá) ښځ. م. د بام چڅه، د بام تلپاچه، د بام چنه، شرفه.

**شرېدل** (šaredə́l) مص. ل. شوریدل، شوریدل، د اوبو پر له پسې توېېدل.

**شریر** (šarír) ص. نر. م. ج. ۱) شري، پساتي، شر او پسات غوښتونکی ۲) په جرګه او مرکه کې هغه څوک چې ډېر غالمغال کوي.

**شریطه** (šaritá) ښځ. م. ۱) شرط او پیمان؛ ۲) اد. دعائیه، په قصیده کې د پای بیتونه.

**شریعت** (šariṣát) نر. م. شریعه؛ ۱) سنت، مذهب ایین؛ داسلام یا بل هر اسماني دین ګرده اخلاقي، اقتصادي او حقوقي مقررات؛ ۲) دین او ملت؛ ۳) ګودر.

**شریعت کول** (šariṣatkawə́l) مص. مت. له عدالت او انصاف څخه کار اخیستل.

**شریف** (šarīf) ص. نر. م ۱) دشرف او لویی خاوند؛ ۲) ساهو؛ ۳) داشرف د کلیمې مفرد مذکر.

**شریک** (šarík) ص. نر. م. (ج. شریکان، شرکاء) ونډه لرونکی، سهیم، ګډ، برخه لرونکی.

**شریکېدل** (šarikedә́l) مص. ل. ۱) ګډېدل، برخه او ونډه اخیستل؛ ۲) مل کېدل، ملګری کېدل.

**شړ** (šaṛ) ص. نر. م. ج. ۱) ناباده، شاړ، بې حاصله، شنډه؛ ۲) ساده؛ ۳) یو ډول ځنګلي دورمه ده؛ ٤) لټ، کاهل؛ ٥) د اوبو د توېدلو اواز.

**شړپ** (šṛap) صوت. نر. م. شرپ، چړپ، د اوبو د توېدو اواز.

**شړت**[۱] (šṛat) نر. م. په اوبلن شي کې د یوه شي د ښوړولو اواز.

**شړت**[۲] (šṛat) ص. نر. م. لټ، سست، کاهل، شړم، شلم.

**شړتوب** (šaṛtób) نر. م. شاړتوب، شړتیا، بې حاصلوالی او بې توښې والی.

**شړتول** (šṛatawә́l) مص. مت. شړمول؛ ۱) په اوبلن شی کې د یوه څیز ښورونه؛ ۲) بې فایدې کول؛ ۳) سستول، لټ کول، شلمول.

**شړتېدل** (šṛatedә́l) مص. ل ۱) شړتېدل، شړمېدل، په اوبلن څیز کې د یوه شي ښوربدل؛ ۲) بې فایدې کول؛ ۳) سستېدل، لټ کېدل.

**شړته** (šṛatá) ښځ. م. شړهته، اوربشه، وربشه؛ د اوربشې دانه.

**شړته** (šṛatá) ص. نب. لږ، کم، په کمه اندازه.

**شړشپه** (šaṛšapá) ښځ. م. د توپان یا جګړې وروستنۍ شپه.

**شړشړی** (šaṛšaṛә́y) ښځ. م. ځړوبی، شرشره، شوړ شوړی، جوړ جوړی، غور غوره.

**شړشم** (šaṛšám) نر. م. شرشم؛ یو ډول بوټی دی، توري وړې دانې کوي چې ډېر زیات غوړي لري او ژېړ، ښایسته، ګڼ ګل کوي.

**شړک** (šṛák) صوت. نر. م. شړق، ترک، د متروکې، لښتې، څپېړې... د وهلو اواز.

**شړکول** (šṛakawә́l) مص. مت. شړقول، په متروکې، لښتې، څپېړې... سره وهل.

**شړکېدل** (šṛakedә́l) مص. ل. شړقېدل، په لښتې، متروکې، او څپېړې وهل کېدل.

**شړل** (šaṛә́l) مص. مت. ۱) رټل، لېرې کول، ګوښه کول؛ ۲) غورځول، اچول، ارتاوول.

**شړم** (šṛam) ص. نر. م. ج. لټ، سست، شلم، تمبل، تنبل، شواړ، ځوړند.

**شړمتوب** (šṛamtób) نر. م. سستي، لټي، تمبلي، شواړتوب، شرم والی، شلم والی، ځوړندوالی.

**شړمول** (šṛamawә́l) مص. مت. شلمول، سستول، تمبلول، تنبلول.

**شړمېدل** (šṛamedә́l) مص. ل. شړوتېدل، شړتېدل، شلمېدل، لټ کېدل، تمبلېدل، سستېدل.

**شړنګ** (šaṛáng) نر. م. وګ. شړنه.

**شړنه** (šaṛána) ښځ. م. ۱) لېرې کونګ، لرې کول، ګوښه کونګ؛ ۲) غورځونه، ارتاوونه.

**شړوالی** (šaṛwā́lay) نر. م. وګ. شاړوالی.

**شړوبی** (šaṛóbay) نر. م. شیردان، د نل، سماوار او آبدان شیردان یا ثوخکه، توتۍ.

**شړوتېدل** (šaṛotedә́l) مص. ل. وګ. شړمېدل.

**شړول** (šaṛawә́l) مص. مت. ۱) وګ. شاړول؛ ۲) شوړول، توېول، توکر یا کالي زړول، د تېپ غوښه توېول؛ ۲) پخول، خوړینول، نرمول.

**شړوم** (šṛom) نر. م. شلوک، ځګ او نور مواد چې د کوچو تر ویلې کولو وروسته په لوښي کې پاتېږي.

**شړومبې** (šṛombé) جن. شړمبې، تروې، شلومبې، شوملې، شومله، شنوبې.

**شړون** (šaṛū́n) نر. م. وګ. شړنه.

**شړونتیا** (šaṛūntiā́) نر. م. تبعید، جلاوطني.

**شړوند** (šṛūnd) ص. نر.م. ځوړ، ځوړند، کـوږ، مړه.

**شړونکی** (šaṛúnkay) فا. نر.م ۱) لرې کوونکی، ګوښه کوونکی؛ ۲) غورځوونکی، اچوونکی.

**شړونګ پړونګ** (šṛungpṛúng) ص. نر.م.ج شړانګې، وانګې، سست پست، لټ پټ.

**شړونګۍ** (šṛungáy) ص. ښځ. ج. چـړونکی، چړونګ، تکی (اوبه)، ډېره لړه (مایع).

**شړونه** (šaṛawə́na) ښځ. م. ۱) وګ. شـاړونـه؛ ۲) شوړونکی، تویونه؛ ۳) پخونه، نرمونه.

**شړونی** (šaṛū́nay) مف. نـر.م. شړونکی، ګوښه کوونکی، رټونکی.

**شړه** (šáṛa) ص. ښځ. م. ۱) شـاړه، شنډه ځـمکه؛ ۲) هغه کور چې څوک په کې نه اوسېږي.

**شړهټه** (šaṛháṭa) ښځ. م. وګ. شړته.

**شړۍ** (šaṛáy) ښځ. م. شـالګی، ورینه لاسي جوړه کمپله.

**شړۍ بوټی** (šaṛəybū́ṭay) نـر.م. دسپـړکۍ د بوټي په څېر یو ډول بوټی دی.

**شړېدل** (šaṛedə́l) مص. ل. ۱) وګ. شـاړېدل؛ ۲) شـوړېدل، تویېدل؛ ۲) پخـېدل، نرمـېدل؛ ۳) مج. خرابېدل، ورانېدل.

**شست** (š(a,ı)st) نـر. م. ۱) نښکه، نخښه، نښان؛ ۲) خـوړ؛ ۳) د غشي ویشتونکی ګـوتمـه؛ ٤) د کب نیولو کونډه.

**شستی** (šastáy) نر.م. وګ. داودي ګل.

**شستۍ** (šastáy) ښځ. م. ج. مو. «پرده»، د مضرابو ردیف، کیبورډ.

**شش**(۱) (šaš) نر.م. یو ډول ګردی، پرې لرونکې ګانه ده چې د غاړې په امېل کې وي.

**شش**(۲) (šuš) نر. م. (ج. ششونه) وګ. سږی.

**ششت** (šašt) نر.م. شاشت؛ ۱) غتـه ګوته (ګوتمی)؛ ۲) یو پښتني غمی لرونکی پسول دی.

**ششک** (šıšk) نـر.م. شوش، شوشک، ډیوډی، څپرکی، رواق، څپرکی.

**ششنا** (šıšnā́) ښځ. م. ششنېده، شنهار، شیشنی، د آس شنهاري، د آس شیشنا.

**ششنل** (šıšnə́l) مص. ل. ششنېدل، شیشنی کول، د آس ششنېدل.

**ششنېدل** (šıšnedə́l) مص. ل. شیشنل، شنهېدل، ششنل.

**شط** (šat) نر. م. ۱) پتنې، د سیند څنډه؛ ۲) هر سیند چې په سمندر ګډېږي.

**شطارت** (šatārát) نـر.م. ۱) چـابکي، تېـزي؛ ۲) زړنګي، هوښیاري؛ ۳) بې باکي.

**شطرنج** (šatr ánj) نر.م.وګ. سترنج.

**شعار** (šıʕā́r) نر. م. (ج. شعارونه ۱) نخښه، نښه، علامه؛ ۲) رواج، رسم؛ ۳) د یوې ډلې ځانګړی ږغ یا نخښه.

**شعاع** (šuʕā́ʕ) ښځ. م. (ج. شـعاعوې) ۱) وګ. وړانګه؛ ۲) هره سیده کرښه چې د یوې دایرې له مرکز څخه د هغې و محیط ته غځېدلې وي.

**شعاعي** (šuʕāʕí) ص. نب. نـر. ښځ. م. د شعاع، په شعاع اړوند.

**شعبده** (šuʕbadá) ښځ. م. چل، چم، دروهنه، حقه بازي، د لاس چالاکي.

**شعبده باز** (šuʕbadabā́z) ص. نـر.م. مـداري، څوک چې شعبده کوي.

**شعبه** (šuʕbá) ښځ. م. ۱) دفـتـر، د رسمي چـارو د اجرا کوټه؛ ۲) څانګه، ډیپارټمنټ.

**شعر** (šıʕér) نـر.م. نظم، اشلوک، بدله، سندره، موزون کلام؛ مرتب کلام چې وزن و اهنګ لري.

**شعري** (šiʕrí) ص. نب. نر. ښځ. م. نظمي، د نظم، د شعر، په شعر اړوند.

**شعله** (šuʕlá) ښځ. م. ۱) شغله، لمبه، غوزځکه؛ ۲) ځلا، رڼايي.

**شعور** (šuʕū́r) نر.م. ۱) درک، فهم، پوهه، حس؛ ۲) د سد و هوښ قوه، د درک و پوهېدنې قوه.

**شعوراً** (šuʕurán) ق. ۱) د شعور له مخې، په شعور سره؛ ۲) اراد تاً، شعوري، عمداً.

**شعوري** (šūʕurí) ص. نب. ۱) د شعور، په شعور اړوند؛ ۲) ارادي، په لوی لاس، شعوراً.

**شغ** (šağ) صوت. نر.م. سغ؛ د گولۍ د تېرېدو غږ.

**شغاشغ** (šəğāšə́ğ) نر.م. په چټکۍ، په توندۍ، په هواکې د غشي یا کارتوس د تېرېدو اواز.

**شغال** (šağā́l) نر.م. و گ. سورلنډی.

**شغالي** (šağālí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) و گ. چغالي؛ ۲) کچه، کم اصله.

**شغالی** (šağāláy) نر.م. ۱) یو ډول لټ او ښ دی؛ ۲) ص. نر.م. شلخی، شغلی، کم اصله، بدل.

**شغرب** (šağríb) نر.م. و گ. ختیځ.

**شغرغ** (šağrə́ğ) ص. نب. پساتي، فسادي، شریر، شري، شرجوړونکی.

**شغز** (šağz) نر.م. یو ډول غرنۍ غته ونه ده چې د اکاسي ونې په څېر سپین گل کوي.

**شغل** (šuğál) نر. م. (ج. شغلونه) دنده، وظیفه، پېشه، مشغولیت.

**شغله** (šuğlá) ښځ. م. (ج. شغلې) ۱) شوغله، شعله، لمبه، غوزځکه؛ ۲) ځلا، رڼا، رڼايي.

**شغلی** (šağláy) نر.م. (لو.) د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

**شغولان** (šağulā́n) نر.م. د لوخې په څېر یو ډول بوټی دی.

**شغهار** (šağahā́r) صوت. نر.م. و گ. سغهار.

**شفا** (šifā́) ښځ. م. روغتیا، روغوالی.

**شفاخانه** (šifāxāná) ښځ. م. و گ. روغتون.

**شفاعت** (šafāʕát) نر.م. ۱) هیله کول، غوښتنه؛ ۲) له چا څخه بل چا ته د عفوې غوښتنه.

**شفاعتگر** (šafāʕatgár) ص. نر.م. د شفاعت غوښتونکی، د عفوې غوښتونکی، د بخښنې غوښتونکی.

**شفاف** (šafā́f) نر.م. ج. روڼ، روښانه، هغه څه چې د ښیښې او بلور په څېر وي.

**شفاهي** (šifāhí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. په خوله، د خولې، د خولې خبرې، په خوله وینا.

**شفتالو** (šaftālū́) نر.م. ج. شوتالو، شلتالو، ختوری، یو ډول خوږه او خوندوره مېوه ده.

**شفتله** (šaftála) ښځ. م. و گ. شوتل.

**شفر** (šifár) نر.م. (ج. شفرونه) شیفر؛ ۱) رمز، راز؛ ٤) د پټې لیکنې د کوډ کلي.

**شفره** (šifrá) ښځ. م. (مو.) د موسیقیز اثر د ریتم د ټاکنې اشاره، ټایم سیگنچر.

**شفري** (šifrí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ۱) په شفر اړوند، رمزي؛ ۲) د شفر مؤظف.

**شفعه** (šafʕá) ښځ. م. د گاونډیتوب حق، د همسایگۍ حق.

**شفق** (šafáq) نر.م. د لمر لوېدو په پیل کې د لمر د روښنايي سوروالی او پاتې وړانگې.

**شفقت** (šafaqát) نر.م. ۱) مهرباني، لورېینه، پېرزوینه، گروهنه؛ ۲) زړه سوی.

**شفیع** (šafīʕ) ص. نر.م. ج. ۱) شفاعت کوونکی، هیله کونکی؛ ۲) د شفعې څښتن.

**شفیق** (šafíq) ص. نر.م. ج. ۱) مهربانه، لورکوونکی، گروهنی؛ ۲) زړه سواندی.

**شق**[1] (šaq) نر.م. (ج. شقونه) ۱) چاو، چاود، درز؛ ۲) عس. د تعرض یو شکل دی؛ ۳) څانګه، مسلک، رشته.

**شق**[2] (šıq) ص. نر.م. ج. ۱) جنجالي، لانجه مار؛ ۲) نر.م. کړکاچ، کش، جنجال، بسنډول.

**شقاوت** (šaqāwát) نر.م. د سعادت ضد، بدمرغه کېدنه، بدمرغي، بدبختي.

**شقايق** (šaqāyíq) نر.م. شقائق، شقايق النعمان، لاله (وګ. ريدی).

**شقب** (šaqáb) ص.نر.م. مست، سرکښه، خشنګ، شوخ، سرکښ.

**شقه** (šuqá) ښځ.م. ۱) پڅخوری، ريتاړه، رښکی؛ ۲) اوږد کاغذ چې په ازموينه کې د زده کوونکو نمرې په کې ثبتېږي.

**شقي** (šaqí) ص. نب. نر.ښځ.م. د سعيد ضد؛ بدمرغه، بدبخته، بدلامی.

**شقيقه** (šaqiqá) ښځ.م ۱) تنکی، ټپک، تندرکی، ستر؛ ۲) څنه، روڼګه، اجل ځای.

**شک** (šak) نر.م. (ج. شکونه) ۱) شبهه، ګومان، د يقين خلاف، وړ؛ ۲) په هډوکي کې کوچنی درز؛ ۳) زرنيخ.

**شکارل** (škārál) مص. مت. ښکارل، دتکارل، نسی کول، چوچو کول، کشکارل.

**شکاک** (šakā́k) ص. نر.م. شکمن، ګوماني، د شک وګومان خاوند.

**شکاکيت** (šakākıyát) نر.م. شک درلودنه، شک او ګومان لرنه.

**شکال** (šakā́l) نر.م. ۱) پښبندی، ښکيل، درېل، دوربل، پچاړی؛ ۲) شک، تردد.

**شکاونه** (škāwaṇá) ښځ.م. ۱) شوکونه، شوکه، په تکی سره غلا؛ ۲) پرې کونه، غوڅونه.

**شکايت** (šıkāyát) نر.م. ۱) ګيله، مانه؛ ۲) د چا د ظلم څخه سرټکونه؛ ۳) زاري.

**شکر**[1] (šúkər) نر.م. مننه، پاس لرنه، د چا د احسان مننه.

**شکر**[2] (šakár) جن. د شکرې ناروغي.

**شکرانه** (šukrāná) ښځ.م. ۱) منښته، ښه مننه، د شکر ادا کونې شی، نذرانه؛ ۲) مج. د کار اجوره.

**شکرپاره** (šakarpārá) ښځ.م. يو ډول خواږه زردالو دي چې په ونو کې يې وچوي او بيا يې خوري.

**شکرخند** (šakarxánd) نر.م. مسکا، خوږه خندا، تبسم.

**شکرخوب** (šakarxób) نر.م. ۱) خوږ خوب، آرام او خوندور خوب؛ ۲) د سهار خوب.

**شکرک** (šakarák) نر.م. کوړی، کړوی، شکرکه، د نباتاتو يو ډول ناروغي ده.

**شکرګزار** (šukərguzā́r) ص. نر.م.ج. شکر کښونکی، شکر ايستونکی، شکر کوونکی.

**شکرګنی** (šakarganáy) نر.م. د مچمچيو کندو، شګيرګينی.

**شکرلب** (šakarláb) مف. نر.م. ۱) چاکی، بچی، کنډا؛ ۲) د ښې او خوږې ژبې خاوند.

**شکره**[1] (šakára) جن. ۱) تري، بوره، قند، چيني؛ ۲) د شکرې ناروغي.

**شکره**[2] (šıkrá) ښځ.م. ۱) بابښه؛ ۲) کيشکره.

**شکری** (šakaráy) جن. ۱) يو ډول خواږه دي؛ ۲) نر.م. د بابښې نر، يو ډول پياوړی مرغه دی.

**شکرۍ** (škaráy) ښځ.م. شکور، له مزرو اوبدل شوې توری.

**شکريه** (šukryá) ښځ.م. مننه، کوروداني، خوښنه، تشکر.

**شکست** (šıkást) نر.م. ۱) ماته، ماتې، بایلات؛ ۲) درز، چاک، چاود؛ ۳) و گ. کسر

**شکسته** (šıkastá) ص.ښځ.م. شکسته لیک، یو ډول لیک دی.

**شک شک** (šakšák) ق. نبغ نبغ، لک لک.

**شکشکه** (šakšaká) ښځ.م. ۱) د سپېنتو یو ډول لوبه ده؛ ۲) ص. ښځ.م. (ج. شکشکې) هغه نجلۍ یا ښځه چې تر «لازم حد» زیاته گرځي.

**شکل** (šakál) نر.م. (ج.شکلونه) ۱) څېره، رنگ، قیافه، مخ، بشره، بڼه، قواره؛ ۲) سمبول؛ ۳) نظیر، مثال، په څېر؛ ٤) کالبوت.

**شکلاً** (šaklán) ق. د شکل له مخې، د څېرې او بڼې له مخه، په ظاهره.

**شکل پېژندنه** (šakalpežandána) ښځ.م. جوله پوهنه، مورفولوجي، څېره پېژندنه، د ظاهر علم؛ ۱) د ژوي پوهنې یوه څانگه ده؛ ۲) صرف، د ژبپوهنې یوه څانگه ده.

**شکلۍ** (šakaláy) ښځ.م. کتموه، شمله، شلکۍ، د پگړۍ (لونگۍ) جوغه.

**شکمپاره** (škampārá) جن. ۱) موز، سپغول، سپرزه؛ ۲) د کاریز د دوو څاگانو ترمنځ فاصله.

**شکمن** (šakmán) ص.نر.م.ج. ۱) ډېډبی، تلولی، دوه زړی، شکي، گوماني؛ ۲) مشتبه.

**شکنبه** (škanbá) ښځ.م.خند، د بډیو یو ډول لوبه ده.

**شکنجه** (šıkanjá) ښځ.م(ج. شکنجې) ۱) و گ. سکنجه؛ ۲) د ترکاڼ گېره؛ ۳) د لرگي لاس گېره، د صحافۍ گېره.

**شکنډر** (škandáṛ) نر.م. د گېډې درد، د نس خوږ، د معدې درد، اپنډیسایتس.

**شکنډه** (škanḍá) ښځ.م. د هلکانو یوه لوبه ده.

**شکنه** (škaná) ښځ.م. جن. (پخ.) ساړه تاوده، ښورواگی، پیاوه، تاودوبی، تورتاوده.

**شکڼه** (škaṇá) ښځ.م ۱) د شکوڼ مؤنث؛ ۲) شنډه ښځه.

**شکور** (škór) نر.م. (ج. شکورونه) شبور، له مزرو څخه جوړه زرغۍ (توکرۍ).

**شکورشا** (škoršá) ښځ.م. یو ډول گیا ده چې په فصل کې راشنه کېږي.

**شکوری** (škoráy) نر.م. شکروتی، ورکوتی شکور، د شکور مصغر.

**شکول** (škawál) مص. مت. ۱) څیرل، بڼه کول؛ ۲) لوټول، په لاره کې غلا کول؛ ۳) رابېلول، راجلا کول، را شوکول.

**شکوڼ** (škūṇ) نر.م. (ج. شکاڼه) شکاڼ، یو ډول وحشي حیوان دی چې پر بدن باندې تېره تور او سپین غشي لري.

**شکوه**[1] (šıkwá) ښځ.م. گیله، مانه، شکایت.

**شکوه**[2] (šukóh) ښځ.م. پرتم، شان، لویي، جلال.

**شکوه**[3] (šıkūh) ښځ.م. ډار، بېره، وېره.

**شکي** (šakí) ص. نب. نر. ښځ. م. و گ. شکمن.

**شکېدل** (škedál) مص.ل. ۱) شوکېدل، څیرې کېدل؛ ۲) لوټېدل، دغله له خوا په لاره کې مال ترې اخیستل کېدل؛ ۳) رابېلېدل.

**شکېدونی** (škedūnay) نر.م. څیرېدونی، څیرې کېدونکی (شی).

**شکېزه** (škéza) ښځ.م. و گ. اڅکېزه.

**شکېلل** (škelál) مص. مت. بډۍ رغړول، بډۍ اچول، سپېنبته درول، سپېنبتې اچول.

**شکېلندر** (škelandár) نر.م. ۱) ارغند، ارغوند، ارغه، مردکه؛ ۲) غټه بډۍ، لویه سپېنبته.

**شکېلی** (škeláy) نر.م. و گ. شپېلک[1].

**شکیه** (šakıyá) ص. نب. د شک، د گومان، په شک اړوند، شک ښرگندوونکی.

**شگاره** (šıgā́ra) ص. ښځ. م. ۱) بلاربه، امېدواره، حامله (ښځه)؛ ۲) متیزه، متیزکه، شگاړه.

**شگری** (šıgaráy) نر.م. ۱) د مچیو گړی، د مچیو ډمبکی، د مچیو ځالـه؛ ۲) تړیک ته د دارو (باروت) اچولو آله.

**شگرۍ** (šagaráy) ښځ. م. د خاورینو لوښو د جوړولو آله.

**شگلن** (šaglán) ص. نر.م. ج. شگوني، شگلور، شگن، د شگو، شگه لرونکی.

**شگ ماهی** (šəgmāháy) نر.م. وگ. ریگ ماهی.

**شگموښی** (šəgmúṣay) نر.م. ریگمال.

**شگوفه** (šagufá) ښځ. م. غوټی، د مېوو لرونکو ونو گلان.

**شگوگل** (šagogál) نر.م. وگ. شگې گل.

**شگون** (šagū́n) نر.م. شگوم، ښاگوم، شوگوم، شونگې، شوگن، فال.

**شگه** (šə́ga) ښځ. م. (ج. شگې) ۱) وگ. ریگ؛ ۲) میده میده شوې تیږه.

**شگۍ** (šəgáy) ښځ. م. د شگو ځای، هغه ځای چې توله پکې شگه وي.

**شگي گل** (šagigwál) نر.م. وگ. ابرک.

**شل** (šal) ص. نر.م. ج. ۱) فلج، گوډ؛ ۲) نر.م. پوړی، دربه، زینه؛ ۲) د کرج غوندې تېغ یا جارحه آله ده.؛ ۳) حرکت، خوځښته.

**شلاته** (šalā́ṭa) ښځ. م. بیم، لسیز، لنبیک، د لوخې ښخ، د ډیلې ښخ.

**شلامیر** (šlāmír) نر.م. پتپتانه، پوټ پتانکه، د ماشومانو یو ډول لوبه ده.

**شلانډه** (šlā́nḍa) ښځ.م. شلاته، سمساره، سلانه.

**شلاونډ** (šlāwánḍ) نر.م. شلاوڼ؛ ۱) د کندهار او هلمند په اصطلاح کې وښش ته نږدې مانا لري؛ ۲) چې حاصل د ځوکسو ترمنځ ووېشل شي.

**شلاوه** (šalāwá) ښځ. م. یو ډول واښه دي چې د اوبو په ډنډ او تل کې راشنه کېږي.

**شلبر** (šalabáṛ) نر.م. ۱) ځیږ رخت، شخه او کلکه توته؛ ۲) جولمبر اوبې ترتیبه کالي.

**شل پلاری** (šalplā́ray) ص. نسر. م. کم اصل، بې نسبه، د چا چې اصل و نسب معلوم نه وي.

**شلت** (šalát) ص. نر.م. لټ، سست، تمبل، کهال، تمبوس، شار، بېکاره.

**شلتې** (šalaté) ص. ښځ. ج. ۱) شلگې (آورېشمې)، لوازې اورېشې، شلګ؛ ۲) نیمې اومې وریجې.

**شلتي** (šaltí) ښځ. م. شلګ والی، شهل ژالی، ځیږ والی.

**شلخته** (šaláxta) ص. ښځ. م. بې حیا ښځه، شلېته.

**شلخورکه** (šalxoráka) ښځ. م. سمساره، سمسیره، سمسره، سمسباره.

**شلخی** (šalxáy) نر.م. ۱) مورغوږی؛ یو ډول سابه دی؛ ۲) ص. نر.م. شغلی، کم اصل توپک.

**شلدانه** (šaldā́ná) ښځ. م. د مرغلرو امیل.

**شلغاړی** (šalğā́ṛay) شلګر، شهلګر، نېزور، نېزه باز.

**شلغټ** (šalğáṭ) ص. نر.م. ج. بې ډوله، بدشکله، بدقواره.

**شلغشی** (šalğášay) نر.م. وگ. شرغشی.

**شلغم** (šalgám) نر.م.ج. تېپر، منګریته، بنګرېته، یو ډول سابه دی.

**شلک** (šalák) ص. نر.م. ج. وگ. شلتې.

**شل کول** (šalkawál) مص. مت. کار سرته رسول، د یوې چارې تر عهدې وتل.

**شلکه** (šálaka) ښځ. م. لټي، سستي، تمبلي.

**شل کېدل** (šəlkedə́l) مص. ل. کار سرته رسېدل، کار اجرا کېدل.

**شلګ** (šaláɡ) ص. نر. م. ۱) شډل، شلتې، شلګې (اوربشی)؛ ۲) څېږ توکړ؛ ۳) بېخي، ګرسره.

**شلګر** (šalgə́r) نر. م. و. ګ. شلغاړی.

**شلګره** (šalgára) ښځ. م. جړی، پر له پسې باران.

**شلګري** (šalgarí) ص. نر. م. شل سازي، نېزه سازي.

**شلګونې** (šalgúnc) ص. ښځ. ج. شل چنده، شل برابره، شل واري.

**شلګونی** (šalgúnay) ص. نر. م ۱) شلګون، شلی؛ ۲) شلمه.

**شلګه**(۱) (šalgá) ښځ. م. د وړې لشه، د وړي لښه، د وړي لشکه، د غنمو د وړي سو ګ.

**شلګه**(۲) (šalága) ص. ښځ. م. د شلګ مؤنث. شلګه ږیره، څېږه (ښه نه خریل شوې).

**شلګی** (šalgáy) نر. م. ۱) ورکوټی شل، وړه نېزه؛ ۲) کمکی تبرګی.

**شلګی** (šə́lgay) ص. نر. م. شلمه، له شلو څخه یوه برخه.

**شلګۍ** (šalgə́y) ښځ. م. ړیکۍ، تاخچه، طاقچه، ووړکی تاخ، شیلګۍ، غراسکی.

**شللو** (šalaláw) نر. م. زیاته سپوره ښوروا، لړغوړي لړونکې ښوروا.

**شلم** (šlam) ص. نر. م. ۱) شرم، شواړ، سست؛ ۲) خانګه، کلکه وازده، لم، کلکه وازګه.

**شلمدنه** (šalamdə́na) ښځ. م. رنی، ړی، د یوه نبات ستنه ده چې په درملو کې هم کارېږي.

**شلمول** (šlamawə́l) مص. مت. و. ګ. شړمول.

**شلنډ** (šlanḍ) ص. نر. م. ج. څورب، چاغ، غوښن، مزی.

**شلنډتوب** (šlanḍtób) نر. م. شلنډوالي، څوربوالي، چاغوالي، څربښت، غټوالی.

**شلنډول** (šlanḍawə́l) مص. ت. څرب، چاغول، غوښن کول، مزی کول.

**شلنډه** (šlanḍá) ښځ. م. ۱) غټه ښه، شرمښکی؛ ۲) سمساره.

**شلنډېدل** (šlanḍedə́l) مص. ل. چاغېدل، څربېدل، مزی کېدل.

**شل و شوټ** (šalošút) ص. نر. م. ج. بېخي شل، بشپړ فلج؛ ۱) د فلج نارغه؛ ۳) مج. بې کاره، لټ.

**شلول**(۱) (šlawə́l) ص. مت. ۱) شکول، شوکول؛ ۲) څیرل، بڅ کول، څیرې کول.

**شلول**(۲) (šalawə́l) مص. مت. فلجول، شل کول.

**شلوم** (šlom) نر. م. و. ګ. شړوم.

**شلومباوڼ** (šlombāwáṇ) نر. م. د چکې کڅوړه، د چکې خلته.

**شلومبکه** (šlombáka) ښځ. م. یو پلن سپین بوټی دی چې پره داري پاڼې لري.

**شلومبې** (šlombé) جن. شلومبه، تروې، شړومبې.

**شله** (šalá) ښځ. م ۱) د نس وازګه؛ ۲) پسته غوښه؛ ۳) ص. نب. جوغېدلی؛ ٤) سپین سترګی؛ ٥) عد. شلې، د وروستاړي په توګه راځي.

**شله منا** (šalamanā́) ښځ. م. ښوندی، څخندی، ښویندی، څښندی، ښویه تیږه.

**شلي** (šli) جن. غله، حبوبات، دانې.

**شلې** (šalé) ښځ. م. یشلی، یو ډول غلمینه مړی ده.

**شلیاپه** (šalyāpá) ښځ. م. ګنده، بډه، بګه، سروزنه، په پرتو ګ کې د پرتو ګاښ اچولو ځای.

**شلیته** (šalitá) ښځ. م. ۱) جانځانی جوال، غونج، ګونده؛ ۲) د اوښ تالو؛ ۳) امیانی، همیانی؛

٤) دلی، ډېرى، امبار؛ ٤) ص. ښځ. م. بدلمني، کاسيره؛ ٥) جوته، پاتې شوني؛ ٤) زړه ورينه توته.

**شلېدل**(١) (šledál) مص. ل ١) شکېدل، جلا کېدل؛ ٢) څيرې کېدل، بڅره کېدل.

**شلېدل**(٢) (šaledál) مص. ل. شيلېدل، شل کېدل، فلج کېدل. .

**شليک** (šilík) نر. م. ١) شلک، د توپک باتونه؛ ٢) پوځي سلامي، نظامي سلامي.

**شليکی** (šlíkay) نر. م. اشتغ، اشتک، آشتق.

**شليل** (šalíl) نر. م. ج. د شفتالو له جنسه يوه مېوه ده چې رنگ يې سور او ژېړ وي.

**شم** (šam) نر. م. ١) شمع، شمعه؛ ٢) د معاون فعل دمتکلم مفرده صيغه ده، د (شول) له مصدر څخه جوړېږي؛ ٣) (اص.) لـه يخه منجمد.

**شماخه** (šamáxa) ښځ. م. و گ. شموخه.

**شماخی** (šamāxáy) ښځ. م. شمه، د چايو شمه.

**شمار** (šmār) نر. م. شمېر، حساب.

**شمارپوهنه** (šmarpohə́na) د سرشمېرنې علم، د احصائيې علم.

**شمارل** (šmarə́l) مص. مت. شمېرل، حسابول، گڼل.

**شمال** (šamā́l) نر. م. ١) لمر ښی، دمږو خوا، د سويل مقابله خوا؛ ٢) و گ. باد ١).

**شمال ختيځ** (šamālxatíz) نر. م. شمال شرقي، د شمال او ختيځ تر منځ لوری.

**شمال لوېديځ** (šamāllwedíz) نـر. م. شـمـال غرب، د لمر ښی او لمر لوېدو ترمنځ لوری.

**شمامه** (šamāmá) ښځ. م. د خراسان د موسيقۍ يوه لرغونې آله ده چې په قاموسو کې د شپېلۍ يا تولکې پر ډول ياده شوې ده.

**شمان** (šamā́n) نر. م. هغه خاوري - خټلې چې پنه جارو کولو سره له يوه ځايه څخه راټولېږي.

**شماندروز** (šmāndróz) نر. م. يو ډول لگل شيندروز، شمندروز، قناويز، يو ښکلی د ورېښمينو توکرو.

**شمبلکار** (šambalkā́r) نر. م. سمبلکار، يو ډول زهر دي.

**شمپانزې** (šampānzé) ښځ. م. چمپانزې، انسان ډوله بيزو.

**شمټه** (šamaṭá) ښځ. م. د ماشومانو يو ډول لوبه ده.

**شمخه** (šamáxa) ښځ. م. و گ. شماخه.

**شمره** (šamrá) ښځ. م. خ. د داېرو نهايي برخه.

**شمړتي** (šmaṛtí) جن، شمبړيته، يو ډول خوشبويه بوټي دي چې خلک يې په کتغ کې وچ اچوي.

**شمزۍ** (šamzə́y) ښځ. م. ج. د ملا تير، اشتری، ستون فقرات.

**شمزيوال** (šamziwā́l) شمزۍ لرونکی، ملاتير لرونکی، فقاريه.

**شمس** (šams) نر. م. لمر، نمر، نور.

**شمس النهار** (šamsunnahā́r) نر. م. د امير شېر علي خان د دورې يوه جريده وه، په افغانستان کې لومړنۍ جريده ده.

**شمسه** (šamsá) ښځ. م. ١) ص. يـو ډول تزئين و چې د کتابو د پوښو پر شا باندې جوړېده؛ ٢) د گومبټې پر سر د لمر په شکل له فلز څخه جوړ شوی شکل؛ ٣) بت.

**شمسي** (šamsí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. د شمس، لمريز، د لمر، پر شمس مربوط؛
شمسي انقلاب: ددوبي اوژمي د فصلونو راتگ.
شمسي سنه: لمريزه سنه، هجري شمسي سنه.
شمسي نظام: لمر او ټول اسماني اجسام چې د لمر پر شا وخوا راځرخي.

**شمشاد** (šamšā́d) نر.م. د شمشاد ونه، يوه لوړه دنګه غرنۍ ونه ده چې ګردې پاڼې لري.

**شمشتۍ** (šamšatáy) ښځ.م. ۱) و ګ. کشپ؛ ۲) تمساح.

**شمشمه** (šamšamá) ښځ.م. ۱) پرتم، شان و شوکت؛ ۲) وياړ، سرلوړي، افتخار.

**شمشو** (šamšó) ښځ.م. سيخچه، ورکوټی سيخ.

**شمشېر** (šamšér) نر.م. و ګ. توره[1].

**شمشېرکه** (šamšeráka) ښځ.م. ګېره، يو تراشلی لرګی دی چې کونده او تير دواړه ورته سوري کوي، د کونډي له خوا يې تير ته ورننه باسي او د يوه لرګين مېخ په واسطه تير او کونده يو له بله سره د موټې تر ځنګ کلکوي.

**شمعه** (šamṣá) ښځ.م. شم، شمه، موباتۍ، د مومو څراغ، شمع، موم باتۍ، موباتۍ.

**شمعه دان** (šamṣadā́n) نر.م. شمعدانۍ، د شمع ايښودلو شی يا آله.

**شمکلی** (šamkaláy) نر.م. ۱) هغه تارونه چې د څادر څنډو، د پټکي شملو او... ته پرېښودل کېږي؛ ۲) چمکلی، يو ډول ګانه ده چې غاړکۍ غوندې غاړې ته ځوړندېږي.

**شمکی** (šamakáy) نر.م. سيګولی، تريخه، يو ډول تريخ بوټی دی.

**شملانه** (šamlā́na) ښځ.م. بې پروايي، بې اعتنايي.

**شمله** (šamlá) ښځ.م. ۱) جوغه، کتموه، شکلی؛ ۲) د پګړۍ سر و پای؛ ۳) پ. ک. شمله، د نارينتوب نخښه ده.

**شمن** (šamán) نر.م. بت، صنم، محبوبا، مينه، معشوقه.

**شمندروز** (šamandróz) نر.م ۱) و ګ. شماندروز؛ ۲) ځنۍ، ځنۍ کوکو، سنبل (ګل).

**شمندګوټی** (šamandgóṭay) نر.م. يو ډول نبات دی او په غنمو کې راشين کېږي.

**شمو** (samó) ښځ.م. يو ډول ګنډون دی چې د خامک کولو او ګلانو اچولو په ډول کېږي.

**شموټګر** (samotgə́r) ص.نر.م. شمټګر، چغلګر، شيطان، چغلمار، چوغل.

**شموخه** (samū́xa) ښځ.م. شماخه، شمخه، د ډېرو په ځېر وړې او د شولو په ځېر بوټي واله يو ډول وابنه دي چې معمولاً په شولوکې راززرغونېږي.

**شمول** (šumū́l) نر.م ۱) ګډون، اشتراک، داخلېدنه، برخه اخيستنه؛ ۲) احاطه کونګ، نيونه.

**شموليت** (sumūlyát) نر.م. ۱) ګډون کول، برخه اخيستنه، اشتراک کول؛ ۲) احاطه.

**شمه**[1] (šáma) ښځ.م. ۱) هغه کېږدۍ چې د وزو له تورو وجغنو نه جوړه شوې وي؛ ۲) و ګ. شمعه؛ ۳) شماخۍ، د دم شوو چايو پاتې شوې پاڼې.

**شمه**[2] (šū́ma) ښځ.م. شومه؛ ۱) خيراتي ډوډۍ چې په مړي پسې پخېږي؛ ۲) توان، سيک.

**شميا** (šamyā́) ښځ.م. مرز غوندې تور مرغه دی چې سپين سپين خاپونه لري.

**شمېر** (šmér) نر.م. و ګ. شمار.

**شمېراند** (šmeránd) نر.م. ګڼونکی، شمېرونکی، حسابدار، محاسب.

**شمېرنوم ځری** (šmernūmǰáray) عددي ضمير.

**شميم** (šamím) نر.م. ۱) ښه بوی؛ ۲) ص. نر.م. لوړ، جګ، مرتفع.

**شناخت** (šnā́xt) نر.م. ۱) پېژندنه، پېژندګلوي، اشنايي؛ ۲) د اتڼ مهارت.

**شناخته** (šnáxta) ص. نب. ۱) آشنا، پېژندوی؛ ۲) ښځ.م. ښاځه، د قبر ولاړه تيږه.

**شناخڅه** (šnā́xca) ښځ.م. و ګ. شاځه.

**شناره** (šnā́ra) ښځ. م. يو ډول اغزی (غنه) دی.

**شناز** (šanā́z) نر. م. (ج. شنازونه) خيگ، ژی، مشک.

**شناس** (šınā́s) نر. م. ۱) پېژندګلوي، شناخت؛ ۲) ص. نر. م. دوروستاړي په ډول صفت جوړوي.

**شناسه** (šnā́sa) ښځ. م. و گ. شاڅه.

**شناغله** (šnā́ğla) ښځ. م. د شنيو پيتي، شنې او ميده شيداني له اوړو سره ګډېږي، وروسته ډوډۍ ترې پخوي چې دې ته شناغله وايي.

**شنالغه** (šnā́lğa) ښځ. م. نيمه خميره، پتير اوړه، هغه اوړه چې رسېدلي (خميره) نه وي.

**شناوی** (šınāwáy) ښځ. م. شنووی، شنوبې، شلومبې، شنيبې.

**شناوی** (šnāwáy) ص. نر. م. شينجاوی، شنه ږيره، مې وريجې، د ږيرې يا سر ويښتان چې سپين او تور ګډ وي.

**شنتی** (šantáy) ښځ. م. شنډی، ډکه، بند.

**شنجرف** (šanjárf) جن. و گ: شنګرپ.

**شنجکی** (šanjakáy) ښځ. م. و گ. دمل.

**شنځی** (šanjáy) ښځ. م. و گ. شمزی.

**شنخته** (šnáxta) ښځ. م. و گ. شاڅه.

**شند** (šand) نر. م. شاهين، باتور، ګوريت ته ورته يو ډول ښکاري مرغه دی.

**شندل** (šandál) مص. مت. ۱) نوستل، شيندل؛ ۲) څارول، جارول، ښندل.

**شنده** (šánda) ښځ. م. ۱) پارېدنه، هيجان، ولوله؛ ۲) ملنډې، مسخرې؛ ۳) اسراف؛ ٤) نامعلومه مصيبت.

**شندی** (šandáy) نر. م. و گ. رېدی.

**شندي** (šandí) ص. نب. ۱) پارېدلی، هيجاني؛ ۲) توکمار، مسخراچي؛ ۳) بدخرخي، اسرافي.

**شنډ** (šand) ص. نر. م. ۱) بې ثمره، بې حاصله، بې مېوې؛ ۲) اګر، وچ، عقيم؛ ۳) وران، ويجاړ؛ ٤) و گ. زنجبيل.

**شنډاک** (šandā́k) نر. م. يو ډول سوبه ده چې په پنځو چيتيو سره کېږي.

**شنډتوب** (šandtób) نر. م ۱) شنډوالی، بې ثمرتيا؛ ۲) وچېدنه، اولاد نه زېږېدنه، عقيم والی؛ ۳) ويجاړتيا، خرابوالی.

**شنډوخاني** (šanduxānı́) نر. ج. ص. نب. شونډو خاني، يو ډول خواږه اوږده کندهاري انګور دي.

**شنډول** (šandawál) مص. مت. ۱) بې حاصله کول؛ ۲) عقيمول، له اولاده اچول؛ ۳) بې نتيجې کول.

**شنډه** (šánda) ص. ښځ. م. ۱) وچه، عقيمه، هغه ښځه چې اولاد نه زېږوي؛ ۲) بې ثمره، بې حاصله.

**شنډی** (šandáy) ښځ. م. ۱) شنتی، بند، ډکه؛ ۲) د يو ډول ونې نوم؛ ۳) اوم اکوړ، اومه مېوه.

**شنډېدل** (šandedál) مص. ل ۱) بې حاصله کېدل؛ ۲) له اولاده پاتې کېدل، عقيمېدل؛ ۳) خرابېدل، ويجاړېدل؛ ٤) بې نتيجې کېدل، ناکامېدل.

**شنقار** (šanqā́r) نر. م. ښنکار، د باز د کورنۍ يو مرغه دی.

**شنکاړه** (šankā́ṛa) ص. ښځ. م. سنګړه، تراړه، ډبرينه، کانيزه ځمکه.

**شنکی** (šınkáy) نر. م. شينکی، هغه خټکی چې تر ګل وروسته دانه نيسي او شين رنګ لري.

**شنګ** (šang) نر. م ۱) خفيف اواز؛ ۲) افواه، شايعه ۳) ص. نب. لږ، لږ غوندې؛ ٤) رمز، اشاره.

**شنګار** (šangā́r) نر. م. سغهار، د ټوپک د ګوليو د تېرېدو اواز.

**شنګال** (šangā́l) نر. م. ښنګل، ښوره، ښره، شناګه.

**شنګرف** (šangárf) جن. و گ. شنګرپ.

**شنګرک** (šangrák) نر.م. مرغنې، عناب، یو ډول مېوه ده چې په درملو کې استعمالېږي.

**سنګرۍ** (šangráy) ښځ.م. ۱) د خاورينو لوښو د جوړولو قالب؛ ۲) د څوکيدارۍ او څارنې لپاره ځلور کونجه برج.

**شنګړپ** (šıngáṛp) نر.م. جن. د جيوې سولفور، د جيوې دکان د ډبرو څخه يو ډول چې سور يا قهوه يي رنګ لري.

**شنګړه** (šangáṛa) ښځ. م. شيګاړه، متيزه، داسې پېغله يا ښځه چې له کوم نارينه سره وتښتي.

**شنګلی** (šangaláy) نر.م. پيڅه، رنګارنګ مرۍ په تار و پيبي، له دغو مريو څخه تارونه ببلوي او سرونو ته يې دوې درې غوټې ورکوي، چې د ځونډې بڼه پيدا کوي.

**شنګڼ** (šangáṇ) نر.م. شګون، شګوم، ښاګوم، ښګوم.

**شنګوری** (šangúray) نر.م. يو ډول خړ وزمه غرنی بوټی دی.

**شنل** (šanál) مص. مت. ۱) لتول، پلټل؛ ۲) کينل، کينودل؛ ۳) تار تار کول، شينډل، پاشل.

**شنوالی** (šanwā́lay) ښځ.م. ښونلی، د ښوون د ونې زړی او دانې، د زيتون دانې.

**شنوبې** (šnobé) جن. شلومبې؛ و.ګ. شړومبې.

**شنه** (šna) نر.ج. ۱) واښه، نباتات؛ ۲) سابه؛ ۳) شين رنګ.

**شنه پېروي** (šnaperawí) ښځ.ج. دسترګو شنه پرده.

**شنه ټوخله** (šnaṭūxála) ښځ.م. شنه غاړه، توره غاړه، يو ډول ساري ټوخی دی.

**شنه خړه** (šnaxáṛa) ښځ. م. ق. سهار وختی، پر لوی سهار، سپېدې چاود، سپېده داغ.

**شنه زرغونه** (šanazarğoná) ښځ. م. و.ګ. شره و زرغونه.

**شنه غاړه** (šnağā́ṛa) ښځ.م. و.ګ. شنه ټوخله.

**شنه کوتره** (šnakawtára) ښځ.م. ولغه، غرنۍ کوتره، دښتي کوتره، سارانۍ کوتره.

**شنه لوخړه** (šnalūxáṛa) ښځ.م. خوړسکه، غړوسکه، غړسکه، شين دود، ګڼ لوګی.

**شنه هريړه** (šnahariṛá) ښځ.م. شنه اريړه، يو ډول طبي بوټی دی.

**شنی** (šánay) نر.م. ۱) شينی، شونی، د چرګانو شينی؛ ۲) شينی، يو ډول دانه ده چې د لاس پرګوتو يا د ښو په تلي کې راخېژي؛ ۳) خسمار.

**شنې** (šne) ښځ. ج. شنی، تيتاقې، اوړي، دخنجک د ونې غوړې دانې.

**شنېدل** (šanedál) مص. ل. ۱) رېږدل، تړېدل، رېږدېدل؛ ۲) زهيرېدل، پريشانه کېدل.

**شنېلی** (šıneláy) نر.م. و.ګ. شينلی.

**شڼ** (šaṇ) ص. نر.م. ۱) مست؛ ۲) د آس ششنی.

**شڼا** (šaṇá) صوت. ۱) شڼ، شنهار، ششنی؛ ۲) مج. ښځ. م. شور، مستي.

**شڼ شڼ** (šaṇšaṇ) نر.م. شڼا، شنهار، شيشنی، د اس ششنی.

**شڼشڼی** (šašaṇáy) نر.م. ۱) ګونګړی، ګينګړی؛ ۲) شرنګاو، جرنګانی.

**شڼول** (šaṇawál) مص. مت. ۱) څنډول، څنډل، خوځول؛ ۲) ششڼول، ششنول، شوڼول.

**شڼهار** (šaṇahā́r) صوت. نر.م. ۱) شڼا، کشهار؛ ۲) ششنا، د آس اواز؛ ۳) د پاڼو د رېږدو اواز.

**شڼېدل** (šaṇedál) مص. ل. ۱) رېږدل، خوځېدل، ښورېدل؛ ۲) شيشنېدل، ششنېدل (د آس).

**شـو** (šo) صوت. ښـځ. م. ایش، اوش، وش، هش، ایشه، د خره د درولو غږ.

**شـواخـون** (šawāxū́n) نر.م. نـول، غم، کـراک، رنځ، خوړین زړه–

**شوار** (šwār) ص. نر.م ۱) ارت، آزاد؛ ۲) غوړولی، خپور ور، اوار، هوار.

**شوارول** (šwārawə́l) مص. مت ۱) ارتول، ازادول، خلاصول؛ ۲) غوړول، خپرول، اوارول.

**شوارېدل** (šwāredə́l) مص.ل. ۱) ارتېدل، وازېدل، خلاصېدل؛ ۲) غوړېدل خپرېدل، اوارېدل.

**شواړ** (šwāṛ) ص.نر.م.ج. ۱) بې ترتیبه، بې نظمه؛ ۲) سست پست، نرم، شړم، ژاولې.

**شـواړه** (šwāṛá) ص. ښـځ. م. ۱) شـاړه، شـنډه، بې حاصله؛ ۲) بېکاره او لټه (ښځه).

**شـواړې شـواړې** (šwāṛéšwāṛé) ق. ۱) تـوکـر تـوکـر، ځیـرې ځیـرې؛ ۲) بې نظـمـه، ګډوډ؛ ۳) سست پست.

**شـوال** (šawā́l) نر.م. ۱) پرتوګ؛ ۲) چار، کار.

**شوبله** (šóbla) ښځ. م. ۱) وګ. زنځه؛ ۲) ن. اص. جنګي ټانک؛ ۳) ښځ. م. هغه اوبه چې په سینه کې لښتي لښتي بهېږي؛ ۲) زابر، زاکښ، جر.

**شوبین** (šawbín) ص. نـر.م.ج. هـغـه څـه چې د فاسفور د ترکیباتو مواد لري او د شپې په تیاره کې ښکاري.

**شوپ** (šup) صوت. نر.م. غوړپ، غړپ، ګوټ، د مایعاتو د څښلو اواز.

**شوپا** (šopā́) ص. نر.م. شوپه، ناسنته، شوپړ، هغه سړی چې سنت (ختنه) شوی نه وي.

**شوپرک** (šawparák) نـر.م. څکالکی، څکالی، ماښام ښاپېرک، کتبیز، تي مرغه دی، بدن یې ووړ اوغټ وزرونه لري د، شپې الوتنه کوي.

**شوپړ** (šopáṛ) ص. نر.م. وګ. شوپا.

**شوپه توب** (šopatób) نر.م. شوپه والی، ناختنه توب، ناسنت توب.

**شوپه شو** (šopašó) ص. نب. شوپشو، تیت پرک، تار په تار، خپورور، خپرې ورې.

**شوپیان** (šupyā́n) نـر.م. تاوان، ضـرر، اناوټ، نغوړ، نقصان.

**شوپیانه** (šūpyāna) ښځ. م. ۱) تـور، تـومت؛ ۲) شرم، خجالت.

**شوت** (šut) ند. نر. م. سوچ! سچ! شتکی (عمل)، سوچېره! د لوبو یوه اصطلاح ده.

**شوتار و بازار** (šawtār wbāzā́r) نر.م. (لو.) د ژمنی موسم یو ډول لوبه ده.

**شوتتی** (šawtatáy) نر.م. وګ. کیشپ.

**شوترکي** (šutaráki) ښځ. م. داره، د اوبو داره، د اوبو پشکه.

**شوتل** (šawtál) نـر.ج. شـوتله، شبتل، شفتل، شبدر، یو ډول ګیاه ده.

**شوته** (šawtá) جن. یوه سرښناکه ماده ده چې د ونو او نباتاتو له حشرو او خزنده و څخه راتویېږي او نبات وچوي.

**شوتلړ** (šutláṛ) نر.م. شترلړ، دوه مایل لرګي دي چې د ارټ د پړي د تاوولو لپاره درول شوي وي.

**شوتې** (šáwte) ښځ.ج. ۱) توکې ټکالې، ملنډې؛ ۲) اوتې بوتې، چټیاټ، ناشودي.

**شوټ** (šuṭ) ص. نر.م. ج. ۱) شوټه، شل، هغه څوک چې لاس یا پښه یې شله او له کاره لـوېدلې وي؛ ۲) نر.م. په سپورتو کې د هدف په لور د ګیند پورې وهلو عمل.

**شوټ کلیان** (šūṭkalyā́n) نر.م. وګ. سود کلیان

**شوټکه** (šūṭáka) ښځ.م. غوټې، سوټکه، دجوارو وږی.

**شوټه** (šūṭá) ښځ.م. ۱) اوم ختکی، اومه خربوزه؛ ۲) ص. نب. و گ. شوټ ۱).

**شوټی** (šūṭáy) ص. نر.م. شوټ لاسی، په لاس شوټ، په لاس گوډ.

**شوخ** (šox) ص نر.م. ج ۱) وران، مست، شیطان؛ ۲) ظریف، ټوکمار؛ ٤) روښانه رنگونه.

**شوخون** (šawxún) نر.م. تاړ، شبخون، ناتار، د شپې له خوا پر دښمن باندې ناڅاپي یرغل.

**شوخي** (šoxí) ښځ. م ۱) ورانې، مستي، شیطاني؛ ۲) ټوکه، ظرافت.

**شودانه** (šawdāná) ښځ.م. شوانه، سیلی، لوبېنده، دماشومانو د تندي اوکوټي ترمنځ نرمه برخه.

**شودپی** (šodapáy) ښځ.م. ۱) و گ. شدوپی؛ ۲) شودپی، یو ډول شیدې لرونکی نبات دی.

**شودر** (šawdár) جن. و گ. شوتل.

**شودسارنگ** (šudsaráng) نر.م. (مو.) سود سارنگ، د کافي تاټ یو راگ دی.

**شودناټ** (šudnāṭ) نر.م. سودناټ، سدمناټ، د میگ راگ د پترو له بارجاو څخه یو دی.

**شوده** (šodá) جن. و گ. شیدې

**شوده** (šodá) ص. نب. ساده، بې تهذیبه، کم عقل، سوډر.

**شودیاره** (šudyā́ra) ښځ.م. و گ. شدیاره.

**شودې والا** (šudewālā́) شیدې خرڅوونکی، شودې خرڅوونکی.

**شودې وریجې** (šudewrijé) شیدې وریجې، شیربرنج.

**شوډنگ** (šoḍáng) ص. نر.م. ج. ۱) شوده، ساده؛ ۲) بې غیرته؛ ۳) نر.م. له شرمه ډک عمل.

**شور**(۱) (šor) نر.م. ۱) چغې، ناري، سوري، ځوږ؛ ۲) د خولې جنگ؛ ۳) خوشکه، قهر؛ ٤) هیجان.

**شور**(۲) (šur) صوت. نر.م. شر، شور، چوړ، شرت، د مایع شي د بهېدو او توییدو اواز.

**شورا** (šorā́) نر.م. ۱) سلا، مشوره، مصلحت، سورت؛ ۲) شورا، جرگه، غونډه.

**شورش** (šoráš) نر.م. و گ. ښورښ.

**شورشر** (šoršár) نر.م. د خولې جنگ؛ غالمغال.

**شورشور** (šuršúr) صوت. نر.م. شرشر، شرشر، د اوبو د توییدو اواز.

**شورکی** (šūrkáy) صوت. نر.م. شرهار، شورهار، شورکی، د اوبو یا مایعاتو د پرله پسې توییدلو اواز.

**شورکی** (šorakáy) ښځ.م. شارکه، زرگره، گل خرېنگه، مینکه، مینا، ښارونې، ښارو.

**شورماشور** (šormāšór) نر.م. ځوږ، شور و غوغا، چاړچوړ، غالمغال.

**شوروا** (šorwā́) ښځ.م. و گ. ښوروا.

**شوره** (šorá) جن. و گ. ښوره.

**شوړېدل** (šuredə́l) مص. ل. چړېدل، شړېدل، شرېدل، د اوبو یا نورو مایعاتو توېېدنگ.

**شوړ** (šuṛ) صوت. نر.م. ۱) جړ، شړ، د مایعاتو د توېېدو اواز؛ ۲) غړپ، گوټ، شوپ، جرعه؛ ۳) نر.م.ص. نب. چوخړن، چوپړن، چوړن.

**شوړاتوت** (šoṛātūt) نر.م. سوړه توت؛ د شستي توت له کورنۍ څخه یو ډول توت دی.

**شوړایي** (šoṛāyí) ښځ.م. کیپ، قیف، کیف.

**شوړپوړ** (šuṛpúṛ) ص.نر.م.ج. ۱) ناولی، مردار؛ ۲) شړم، شواړ.

**شوړتک** (šuṛták) نر.م. داسې توکر چې سست او شړل او یډل شوی وي.

**شوړک** (šuṛk) نر.م. شوټ، شت، سځ، شیځ، جلتک، پروېشنه، شتکی کول.

شوړګی (šorgáy) نر.م ۱) اونګ، هاونګ، هاون، چتو، وکلی؛ ۲) د شلومبو لوښی.

شوړول (šuṛawə́l) مص. مت. ۱) شړول، تویول، یو شي له ډېرو پخولو یا مینځلو یا ډېرو زړولو له امله شړول؛ ۲) د تپ شړېدل، کالي شړېدل.

شوړه⁽¹⁾ (šóṛa) ښځ. م ۱) د چنولو توکر؛ ۲) ماشوړه، خولپوټی؛ ۳) غټه مړی، لویه خمخه.

شوړه⁽²⁾ (šúṛa) ښځ. م. ۱) دجوارو ځنه؛ ۲) د باجرې وړی؛ ۳) ص. ښځ. م. هغه سترګه چې اوبه او چوخنې کوي.

شوړهار (šuṛhā́r) صوت. نر.م. شورهار، شرهار، شورکی، شرار.

شوړېدل (šuṛedə́l) مص. ل. ۱) د ډېرو پخېدو یا پرېول کېدو یا زړېدو له امله تویېدل، شړېدل؛ ۲) شورهار کول؛ ۳) د تپ، لباس... شړېدل.

شوش (šoš) نر.م. ۱) وګ. ششک؛ ۲) مرغند، سکروټه، خوړلن، شوشی.

شوشک (šošák) نر.م. وګ. ششک.

شوغ (šuğ) ص. نر.م. کوږ، تاټ، تاټ شوی، منحني.

شوغړېدل (šuğṛedə́l) مص. ل. ۱) سوغړېدل، ډډه پر ډډه اوښتل، اړخ پر اړخ اوښتل.

شوغکه (šuğáka) ښځ. م. لشه، اشکه، لښه، د غنمو یا اوربشو د وږي لشه.

شوغول (šuğawə́l) مص. مت. کږول، تاټول، منحني کول.

شوغه (šúğa) ښځ. م. ۱) شخ ریښته، ځیره ویښتان؛ ۲) غدکه، چوغه، جوغه، لویه چپنه، چکمنه.

شوغی (šuğáy) ص.نر.م. ۱) هغه پسه چې غوږونه یې سپین تکي ولري؛ ۲) کوسه.

شوغېدل (šuğedə́l) مص. ل. کږېدل، منحني کېدل.

شوق (šawq) نر.م ۱) ناټ، تخله، ځله، میل، مینه، لېوالتیا، ذوق؛ ۲) تص. مفرط میل، انزعاج.

شوقدر (šawqádər) نر.م. وګ. شوکدر.

شوقمن (šawqmán) ص.نر.م.ج. لېوال، شوقي، ذوقمند، کازمن.

شوک⁽¹⁾ (šūk) مف. نر.م ۱) شکېدلی، پرې شوی؛ ۲) لوڅ شوی، مال او شته ترې اخیستل شوی.

شوک⁽²⁾ (šok) نر.م. ۱) ښور، ټک، شرق، جرک، ټکان، ضربه؛ ۳) دحیرانتیا په وخت کې د مغز یا احساساتو ناڅاپي پارېدنه.

شوکاره (šūkā́ra) ښځ. م. نوکاره، ټونګاره، شیګاره شونګاره، ګرړی.

شوکاڼی (šawkā́ṇay) نر.م. نرم، پوست او ښوی کاڼی چې له هغو څخه ځینې لوښي جوړوي.

شوک پوک (šūkpū́k) د ن. نر.م. ځیرې ویرې، ځیرې ځیرې، ریتاړې ریتاړې.

شوکت (šawkát) نر.م. برم، پرتم، اوکوب، شان، سامانه، شمشمه.

شوک تراپي (šoktrapí) ښځ. م. د شوک په وسیله معالجه، د شوک درمان، د عصبي تحریک په وسیله روغتیا اعاده کول.

شوکدر (šawkadár) نر.م. شبکدر، د قدرشپه، شب قدر، لیلة القدر، شوقدر.

شوکمار (šukmā́r) ص. نر.م. (ج. شوکماران) داړه مار، شوکه کوونکی، لارې وهونکی.

شوکور (šawkór) ص. نر.م. ج. شپه ړوندی، شپبلندر، شپېغلی، شبکور.

شوکول (šukawə́l) مص. مت ۱) شکول؛ ۲) رابېلول، راجلا کول؛ ۳) په لاره کې شکونه کول.

شوکه (šúka) ښځ. م. غلا، تښتونه، لاره وهنه، له یو چا څخه په لاره کې په زور مال اخیستل.

**شوکې پوکې** (šūkcpūké) ص. نب. و گ. شوک پوک.

**شوکېدل** (šukedál) مص. ل. و گ. شکېدل[1].

**شوگه** (šúga) ښځ. م. یو ډول وریجې.

**شوگیر** (šawgír) نـر. م. خوب نه کول، شوگیره، شپه پر سر اخیستنه.

**شول**[1] (šwál) مص. ل. سول، کېدل.

**شول** (šul) ص. نر. م. سخت، کلک، ځیږ.

**شولپمبی** (šolpambáy) نر. م. شولمپی، پلاله، د شولو میده واښه، شول واښه، پروړه.

**شولتکی** (šoltákay) نر. م. شولک، شولگ، د بدن پوست، د وجود پوستکی.

**شولخ** (šoláx) نر. م. د ژبې زیړه برخه، د ژبې ځیږه حصه، د ژبې پاسنۍ برخه چې ځیږه وي.

**شولکه** (šoláka) ښځ. م. و گ. ژوره[1].

**شولکی** (šolakáy) ښځ. م. یو ډول کوچنی بنیان، د نوي زېږېدلي ماشوم ورکوټی بنیان.

**شولگ**[1] (šolág) نر. م. ۱) شولک، د پوستکي لومړی طبقه؛ ۲) بوجی، بوری، گونی، گونی.

**شولگ**[2] (šulág) نـر. م. ژامـه، زامـه، د خولې ژامه.

**شولگره** (šolgára) ص. نب. شـولگر، هغه ځمکه چې شولې په کې کرل شوې وي.

**شولمبکه** (šolambáka) ښځ. م. یـو ډول پلن بې ډنډره بوټی دی چې پاڼې یې سپین رنگ لري.

**شولمپی** (šolampáy) نر. م. و گ. شولپمبی.

**شولواښه** (šolwáṣa) جن. پروړه، ناړی، پـلاله، د شـولو دروزه، د شولو واښه.

**شوله**[1] (šolá) ښځ. م. ۱) د وریجو بوټی، د شولې بوټی؛ ۲) جن. یو راز خواړه دی چې د پنډو وریجو څخه پخېږي.

**شوله**[2] (šwála) ښځ. م ۱) د نس ځریکې؛ ۲) د خاڅرویو د نوکانو پرې کـولـو آلـه؛ ۳) د قـولنج درد؛ ۵) د ښځې د وضع حمل درد.

**شولی** (šoláy) ص. نب. بېکاره او سسته ښځه.

**شولې** (šolé) ښځ. ج. د وریجو بوټي.

**شوم** (šūm) ص. نر. م. ج. (ج. شومان) ۱) کرتی، موزي، بخیـل؛ ۲) نحس؛ ۳) بدمرغه؛ ٤) مج. نهار، وږی.

**شوماشتي** (šomāšti) ښځ. م. زمـوږ د هېواد له ژبو څخه یوه ژبه ده. د ژوند تاتوبی یې کونړ دی.

**شومتیا** (šumtyā́) ښځ. م ۱) شوموالی، کنجوسي، بخیلي؛ ۲) مج. بدمرغي؛ ۳) نحوست.

**شومړې** (šumṛé) جن. و گ: شړومبې.

**شومل** (šumál) مص. ل. شـومول، چنبل، څنبل، چکل، څکل، د مایعاتو غوړېل.

**شومله** (šomlá) ص. نب. زوړ او له کاره وتلی شی.

**شومول** (šumawál) مص. مت. و گ. شومل.

**شومه** (šúma) ښځ. م. ۱) د مېوې ځوښـه؛ ۲) دیوه شي جـوهر و قوت؛ ۳) د مـړي د لومړۍ شپې یادکال پوره کېدو خیرات؛ ٤) د شپې یوه برخه؛ ٤) د یوې شپې خواړه؛ ۵) دیوه وخت زری.

**شومه دم** (šūmadám) نر. م. نیمه شپه، پخه شپه.

**شومه نیول** (šumaniwál) مص. ل. (پ. ک.) له ډوډۍ څخه لاس نیول؛ څوکسه د ننواتې په توگه د هغه چا کره ورځي چې د وررسېدلي زیان د غچ لپاره هېڅ جوړې ته نه حاضرېږي، په دغه وخت کې نوله ډوډۍ څخه لاس نیسي چې د کور خاوند ددوی غوښتنه ومني.

**شومی** (šū́may) نر. م. غرپ، گوټ، شوپ.

**شومي** (šūmí) ښځ، م. ۱) شوموالی، شومتیا؛ ۲) نحوست؛ ۳) لوږه؛ ٤) کمزورتیا.

**شونټی** (šonṭáy) ښځ. م. یهړیی، ییړه، دروکي، پهلوڅی، چراغ چوب؛ ۲) ص. ښځ. م. شوټی، هغه ښځه چې په یوه لاس ګوډه وي.

**شونډ** (šūnḍ) جن. ۱) وګ. زنجبیل؛ ۲) نر. م. شونډه، سونډه.

**شونډا** (šunḍā́) ص. نب. شونډور، شُنډور، کنډا، شونډو، غټ شونډی.

**شونډان** (šunḍā́n) نر. ج. شونډې، سونډې، د (شونډه) جمع.

**شونډک** (šunḍák) نر. م (ج. شونډکونه) وریوز؛ د شونډو لاندېنی برخه چې زنه هم په کې راځي.

**شونډکی** (šūnḍakay) ص. نر. م. بدرنګه، بې څېرې، د بدرنګې بڼې څښتن.

**شونډکیزچرګ** (šundakizčárg) نر. م. پیل مرغ، خرتسی چرګ، فیل مرغ.

**شونډو** (šuḍú) ص. نب. وګ. شونډا.

**شونډوخاني** (šunḍuxā́nī) نر. ج. ص. نب. وګ. شنډوخاني.

**شونډه** (šū́nḍa) ښځ. م. (ج. شونډې) شُنډه، سونډه، د خولې بلندېنۍ برخه چې دوې برخې لري.

**شونډه وتل** (šunḍawatál) مص. ل. پرشونډه باندې واړه واړه بخارونه راختل.

**شونډیز** (šunḍíz) ص. نر. م. ج. د شونډې، په شونډه اړوند - شونډیز غږ (ب. پ).

**شونکی** (šū́nkay) نر. م. کېدونی، کېدونکی، شونی، ممکن.

**شونګوره** (sūngóra) ښځ. م. شونګه، هغه ببړۍ چې یوه څنډه یې نه وي.

**شونګن** (šūngán) وګ. شګون.

**شونګه** (šū́nga) ښځ. م. هغه سپنسته چې یوه څنډه یې نه وي.

**شونه** (šwána) ښځ. م. کهدنه.

**شونی** (šū́nay) مف. نر. م. شونکی، کېدونکی، کېدونی، ممکن.

**شوو** (šwū) ښځ. م. پناه ورکونګ، پناه.

**شووینیزم** (šowinízam) نر. م. په وطنپالنه کې تعصب، افراطي وطنپالنه.

**شوه** (šáwa) ښځ. م ۱) د شیشم ونه؛ ۲) ص. نب. ق. کنبته، څور، شهوه ۳) عجز، انکسار.

**شوه توب** (šawátob) نر. م. څورتوب، څوروالی.

**شوه کېدل** (šawákedál) مص. مت. ۱) شهوه کېدل، ښکسته تلل؛ ۲) مج. له جګړې څخه لاس اخیستل، عجز ښکاره کول.

**شوی** (šáway) مف. نر. م. سپینه شوې خامتا، سپینه شوې بیستی.

**شوې** (šáwe) ښځ. ج. نیم، یوه ونه ده چې پوستکی او پاڼې یې تریخ خوند لري.

**شه** (ša) ف. ۱) شو، سو، کېده، استمراري ماضي؛ ۲) سه، د مخاطب مفرد صیغه ده - ورک شه!.

**شها** (šahā́) ښځ. م. شهی، معشوقه، مجبوبه.

**شهاب** (š(a,ı)hā́b) نر. م. ۱) لمبه، د اورلمبه؛ ۲) ستوری، روښانه ستوری.

**شهاب ثاقب** (šahābısāqíb) نر. م. اسماني ډبرې، اسماني تیږې، شهاب، میتیر.

**شهادت** (šahādát) نر. م. ۱) شاهدي ورکونه، ګواهي ورکول؛ ۲) ل. م. حضور، معاینه، اطلاع؛ ۳) شهیدېدنه؛ ٤) څرګندېدنه.

**شهادت نامه** (šahādatnāmá) ښځ. م. ۱) بری لیک، ډیپلوم، ډپلومه؛ ۲) تصدیق؛ ۳) شهادت لیک، شهادت پاڼه.

**شهامت** (šahāmát) نر. م. ۱) مېړانه، غیرت؛ زړورتوب؛ ۲) لویي، سترتوب؛ ۳) څیرکي.

**شهانه** (šahānā́) ص. نب. د شاه، شاهي، شاهانه.
**شهباز** (šahbā́z) نـر.م. ۱) لـسپين غټ باز، ښـه ښکاري باز؛ ۲) مو. و گ. زخمه.
**شهد** (šáhəd) جن. و گ. شات.
**شهرت** (šuhrát) نر.م. ۱) مشهورېدنه؛ ۲) ښکاره کېدنه، څـرګندېدنه، جوتېدنه؛ ۳) سوانـح، پېژندنه.
**شهريار** (šahrıyā́r) نر.م ۱) دښار مشر؛ ۲) پاسوال، تولواک، پاچا.
**شهزاده** (šahzādá) نر.م. و گ. شازاده.
**شهسوار** (šahswā́r) ص. نـر.م. شا سوار، د اس د سپرلی ماهر.
**شهکار** (šahkā́r) نر.م. و گ. شاهکار.
**شهلا** (šahlā́) ص. ښځ. م. ۱) تکې توري ښايسته سترګې (ښځه)؛ ۲) شين وېـره سترګې؛ ۳) يو ډول نرګس.
**شهنايي** (šahnāyí) ښځ. م. مو. شاهنايي، شهنا؛ «سورنا»، د موسيقۍ يوه لرګينه آله ده.
**شهند** (šahánd) نر.م. و گ. شند.
**شهو** (šahó) ښځ. م. ۱) شـها، شـهۍ، معشـوقـه؛ ۲) شهۍ، ددلي مينه (معشوقه).
**شهوت** (šahwát) نر.م. ۱) مني؛ ۲) جماع ته زړه کېدل؛ ۳) د لذت د درک ميل.
**شهود** (šuhū́d) نر.م ۱) حاضرېدنه؛ ۲) ع. مشاهده؛ ۳) شاهدېدل، د شي لېدل.
**شهيد** (šahíd) ص. نـر.م. ۱) د خدای په لاره کې مړ؛ ۲) حاضر، شاهد.
**شهين** (šahī́n) نر.م. ۱) و گ. شند؛ ۲) د يوه ساز نوم دی.
**شی** (šay) نر.م. (ج. شيان) ۱) مال، متاع؛ ۲) څه، څيز؛ ۳) (فل.) پديده.

**شي** (ši) ف. مرستيال فعل دی چې په حال، استمراري او راتلـونکې زمانه کې استعمالېږي؛ د امـر صيغه ده.
**شياځه** (syā́ja) ښځ. م. شاځه، شازه، دتيږې تبې، دکانۍ تبې، پلنه تيږه.
**شېبره** (šebára) ښځ. م. وچکۍ، لويه تبه، خواچې توره تبه، محرقه (تبه).
**شيبره** (šibára) ښځ. م. اساني، سهولت.
**شېبه** (šebá) ښځ. م. ۱) لحظه، دم، آن، لږ وخت؛ ۲) ترله، ترږه، د باران شېبه.
**شيبه** (šíba) ښځ. م. يو ډول کچه مرغلره (مرغچۍ) ده.
**شېبه ګړی** (šebagaṛáy) درنګ شـېبه، درنګ ساعت، لږ ساعت، څه وخت.
**شيت** (šit) ص. نـر.م.ج. ۱) چخپيت، چيت پيت؛ ۲) مراوی، شيته، جينګ.
**شيتان خوټ** (šaytānxwáṭ) نـر.م. کولـولو، د مټ شيطان، يو ډول خزنده ده؛ ۲) د ماشومانو يو ډول لوبه ده.
**شيت په شيت** (šitpašít) ص. نـر.م.ج. شـوپه شو، خپور ور، تيت و پاشان.
**شيتړ** (šitáṛ) نر.م. څيرې رخت، شډل رخت.
**شيته** (šíta) ص. ښځ. م ۱) د شيت مؤنث؛ ۲) د يوې مرغۍ نوم دی؛ ۳) ښويه شوې ښځه.
**شيته خوله** (šítaxwlə́) ښځ.م. جينګه خوله، ويته خوله، وېره خوله.
**شېتۍ** (šetáy) ښځ. م. ۱) شتۍ، توبرۍ؛ ۲) تبره اوسپنه چې د تبر په سر لګول کېږي؛ ۳) توکه، پرپرۍ؛ ٤) د لرګي تبلۍ.
**شيټه** (šiṭá) ښځ. م. شوټه جوار، د شخولو سره جوار، د جوارو هغه غوټۍ چې پټبونه ولري.

**شېخ** (š(e,ay)x) ص. نر.م. ۱) سپين ږيری، بوډا؛ ۲) مرشد، پير؛ ٤) مسلمان شوی هندو.

**شېخ چلي** (šexčalí) نر.م. يو افسانوي شوده دی چې نوم يې د کوزې پښتونخوا او هند په شعرونو سندرو او کيسو کې ډېر اخيستل کېږي.

**شېخدو** (šexdáw) نر.م. شخه دو، شيشو، شيشم، بتخک، چيچړ. يو ډول مرغی دی.

**شېخي** (šexí) ښځ. م ۱) سپين ږيرتيا، بوډاتوب، زړښت؛ ۲) مرشدي، پيري؛ ۳) زهد، تقوا.

**شېخی** (šayxáy) نر.م. د پښونو يوه ناروغي ده.

**شيدا** (šaydā́) ص. نب. ۱) مين، عاشق؛ ۲) ع. د جذباتو اهل.

**شيدانکه** (šidā́nka) ښځ.م. يو ډول نبات دی.

**شيدې** (šidé) جن. شودې، پی، شوده، لبن.

**شيدې وغوړي** (šidewuğwaṛí) جن. (پخ.) يو ډول خواږه دي.

**شېډ** (šeḍ) نر.م. (ج. شېډونه) شپږ، استر، پوښ، دويم استر.

**شېرازه** (šerā́za) ښځ. م. ۱) د کلا له دېواله چاپېره راتاو شوی بل دېوال؛ ۲) ص. نب. ښېرازه، سمسور؛ ۳) جن. چکه، د تروو چکه.

**شېراک** (šerā́k) نر.م. تلتک، برستن، شېرک.

**شيرالپ** (širāláp) نر.م. يو ډول نبات دی چې ژېړ گل لري.

**شيرچای** (širčā́y) جن. تورې، د شيدو چای.

**شيرچايي** (širčāyí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. له سرو رنگو څخه يو ډول رنگ دی.

**شېرخت** (šerxát) نر.م. شېرخط، شېر و خط، د شرط تړلو او قمار يوه وسيله ده.

**شېرخوله** (šerxwála) ښځ. م. يو ډول شين بوټی دی چې ژېړ گلان کوي.

**شيرخښت** (širxə́ṣt) جن. شيرخشت، زمړود هېواد د طبي نباتاتو يو محصول دی.

**شيردان** (širdā́n) نر.م. ۱) ښوبه، توتی، څوخه، ښوکه، يوه آله ده چې په اودان، بوتل او... پورې نښتې وي؛ ۲) الموری، د ماشومانو يو ډول ناروغي ده.

**شېرشاو** (šeršā́w) نر.م. کنده، کمکی تله، کوچنی ترازو، وړه تله.

**شيرشيرک** (širširák) نر.م. جبه زاره او مرغه لرونکې څمکه.

**شېرک** (šerák) نر.م ۱) و گ. شېراک؛ ۲) شرک؛ کلانکار، شيغنکی.

**شيرک** (širák) نر.م. پی شوده، شيرگی، شيرگی؛ د جوارو هغه وږی چې دانه يې کلکه شوې نه وي.

**شيرکارل** (širkārál) مص. مت. ۱) اوشکې کول، ښکارل، توش کول؛ ۲) مج. لمسول.

**شيرکټی** (širkaṭáy) ښځ. م. هغه غوا چې کال وسر (تول کال) شيدې کوي.

**شيرکښ** (širkáṣ) جن. يو څه خميره شوي اوړه په اوبه کې مښې چې لږ پاتې شي او يو ډول ژاوله پيدا کړي بيا په زخم يا د پښو په چاودو ږدي.

**شېرکه** (šeráka) ښځ. م. و گ. ښارو.

**شېرکی** (šerakáy) ص. نر.م. ۱) زمروتی، زړور؛ ۲) د شېر مصغر شکل.

**شيرگرم** (širgáram) ص. نر.م. ج. شيرگرمه، تړم تومې، تودوکی، تمنی، لومنی.

**شېرگنی** (šerganáy) نر.م. چته، د مچيو کندو، د مچيو ځاله، د مچيو گړی، شگيرگينی.

**شيرماهي** (širmāhí) نر.م. ۱) اصيل ماهي، يو ډول غټ کب دی؛ ۲) يو ډول صدف دی.

**شیروار** (širwā́r) نر.م. پې وار، څو کورونه شیدې سره یوځای کوي، مستې یې په ګډه سره شاربي او کوچ یې په وار اخلي.

**شیرواری** (širwārā́y) ښځ. م. ۱) دلرګي څمڅی یاکونډی چې کوچ وریاندې له شلومبو څخه راغونډوي؛ ۲) دمستو کټوه.

**شیروانی** (širwānáy) ښځ. م. دکوټې دبام د پاسه لەلرګو څخه پوښښ جوړوي په سر یې خټه اچوي، په دې وسیلې سره د اوبو مخه نیسي.

**شیرواني** (širwāní) ښځ. م. دنوي زېږېدلي ماشوم چپنه.

**شیروشکر** (širušakár) نر.م. وګ. ذولسانین.

**شیره** (širá) ص. نر.م. ج. ۱) پو[illegible]، ابلوچ، نابالغه هلک؛ ۲) وری، رودونکی [illegible]؛ ۳) عصاره، جوس، د مېوې اوبه، څوبه [illegible] ٤) خرېړی؛ ٥) ساده لیتی، اتوب.

**شیری** (šíray) نر.م. د ګندنې په څېر یو ډول بوټی دی چې خوږ خوند لري اوخوړل کېږي.

**شېری** (šeráy) نر.م. وګ. شری.

**شېری** (šeráy) ښځ. م. ج. وګ. شاری.

**شېرین** (šerín) ص. نر.م. ج. وګ. خوږ (۲).

**شېرین بویه** (šerínboyá) ښځ. م. وګ. خوږه وله.

**شیرینکه** (širináka) ښځ. م. وګ. څوانکه.

**شېریني** (šeriní) ښځ. م. (ج. شېرینۍ) ۱) خوږه، خواږه؛ ۲) زېږیي بدله؛ ۳) شېریني خوري، لاس نیوی؛ ٤) خوږوالی.

**شېریني باب** (šerinibā́b) نر. ج. خواږه، خواږه شیان، ټول هغه شیان چې خواږه وي.

**شېړ** (šeṛ) ص. نر.م. وګ. شوږ ۳).

**شېړا** (šeṛā́) ص. نب. ډوغر، څوک چې په یوه سترګه ړوند وي.

**شیزوفرني** (šizofrni) ښځ. م. (رو.) شیزوفرینیا، دروح یا شخصیت د تجزیې ناجوړي، د ځوانی جنون، یوه اروایي ناروغي ده.

**شیزوګوني** (šizogoní) ص. نب. (بیا.) شایزو ګوني، غیر زوجي ځانګړی مضاعف انقسام دی.

**شیست** (šist) نر.م. یوه کرستالیني ډبره ده چې په اسانۍ سره پرده پرده کېږي.

**شیشپر** (šišpár) نر.م. ۱) مج. غړانګه، دقهر ناره؛ ۲) مېخ لرونکی سوټی.

**شیشتی** (šištáy) نر.م. شپشتی، د څرخ پره، برونی، لکه د ژرندې د څرخ پرې.

**شیشړ** (šišáṛ) ص. نر.م. ۱) بې حیا، بې شرمه، چیچړ؛ ۲) نر.م. چوړو، شیشو، شېخدو، یو ډول مرغۍ ده.

**شیشک** (šišák) نر.م. ششک، درشیل، دوشیرل، پیشرلی، درې کلن پسه.

**شیشکه** (šišáka) ښځ. م. ۱) روې، اربابښی، بلا؛ ۲) لبنته، شتکه؛ ۳) دتغر نرۍ نرۍ کرښې.

**شیشګی** (šišgáy) نر.م. جبزګی، شیژګی، شکونې ته ورته یو کوچنی تې لرونکی اوحشره خوړونکی ژوی دی پزه یې اوږده، لاسونه او پښې یې لنډ دي.

**شیشګی مار** (šišgaymā́r) نر.م. تورمار.

**شیشن** (šišán) نر.م. چېشنکی، اوله، لیری، نوی زېږېدلی وری، وری چې شودې روي.

**شیشم** (šišám) نر.م. وګ. شوه ۱).

**شیشنل** (šišnál) مص. مت. وګ. ششنل.

**شیشنی** (šišnáy) نر.م. ششنا، د آس شیشنا، د آس جګ او ځانګړی اواز.

**شیشو** ([illegible]) نر.م. وګ. شیشړ ۲).

**شیشه** (šiša) ښځ. م. و گ. ښیښه.

**شیشی** (šišáy) نر.م. شیشنار، سسی، لګوونی، یو بوټی دی چې د اور بلولو لپاره کاریږي.

**شیطان** (šaytā́n) ص. نر.م. ج. (ج. شیطانان) د غټ دیب، ابلیس؛ ۱) د اسلام له نظره شیطان یو پېری دی چې له اوره پیدا شوی دی. ۲) مج. چوغلګر؛ ۳) شوخ، ورانکاری.

**شیکی** (šíkay) نر.م. یو ډول زهرجن بوټی دی.

**شیګره** (šigará) ښځ. م. ۱) باران؛ ۲) تېز باران، د باران تېزه شپېه.

**شیګړه** (šigáṛa) ص. ښځ. م. شیګاړه، شنګړه، متیزه، له خپل مېړه څخه تښتېدلې ښځه.

**شیل** (šil) نر.م. ج. ۱) یوه رسوبي ډبره ده؛ ۲) د باندې کلک پوښ؛ ۳) ګوجی؛ ٤) ګولی.

**شېلاوه** (šelāwá) ښځ. م. یو ډول خړوبونه ده چې په ټوله ځمکه باندې یو شان اوبه ودرېږي.

**شېله** (šelá) ښځ. م. ۱) خوړ، لګد؛ ۲) دسترګو په کونجو کې کتنه.

**شیله پینګ** (šilapíng) ص. نر.م. ج. ګوښی، ګوښه، له خلکو جلا، څنډې ته.

**شېلی** (šeláy) نر.م. له سپین و تور رنګ څخه یو مرکب رنګ دی.

**شیمي** (šimí) ښځ. م. و گ. کیمیا.

**شین** (šin) ص. نر.م. (ج. شنه) ۱) یو رنګ دی؛ ۲) و گ. زغون ۲)؛ ٤) راټوکېدلی، زرغون شوی، راشین شوی.

**شین امي** (šinamí) ص. نر.م. نالوستی، بېسواده، بالکل امي.

**شین پاڼی** (šinpā́ṇay) نر.م. نیلوفر، د نیلوفر ګل، یو ډول بوټی دی چې غټ ګل کوي.

**شین پوزی** (šinpózay) نر.م. ګلېتی توپک.

**شین تتی** (šintatáy) نر.م. و گ. شمشتی.

**شین تړی** (šintáṛay) نر.م. یو ډول بلبل دی.

**شین توپکه** (šintopáka) ښځ. م. و گ. شدوپې.

**شین توپی** (šintopáy) ښځ. م. و گ. شدوپې.

**شین تاغ** (šinṭā́ğ) نر.م. شین تغی، شین تغ، شین تاغی، یو مرغه دی.

**شینجاوی** (šingjāwáy) نر.م. شین وزمه، مراوې ونه، مراوی بوټی، جینګ بوټی، شیته بوټی.

**شینجکی** (šinjakáy) ښځ. م. و گ. دمل.

**شین چغزی** (šinčağzáy) ښځ. م. پسته، غرنی مېوه ده.

**شین چمبی** (šinčambáy) نر.م. چړوی، رنګریز، ننګریز (و گ. رنګریز).

**شین خوتی** (šinxóṭay) نر.م. شین تغ، یو مرغه دی چې په دري یې نیله زاغ بولي.

**شین خورکه** (šinxwaráka) ښځ. و گ. شرمښکی

**شیند** (šind) نر.م. و گ. شند.

**شیندکه** (šindáka) ښځ. م. ګاټې، واړه واړه کاڼي چې هلکان پرې لوبې کوي.

**شیندل** (šindál) نر.ج. ۱) دځارویو تر پښو لاندې لامده خوشايي؛ ۲) مج. بولې، متیازې، ادرار؛ ۳) مصرمت. نوستل، ښندل، خپرول.

**شیندونی** (šindū́nay) نر.م. ۱) د شیندلو آله؛ ۲) ص. نر.م. بدخرڅه، مسرف.

**شینده** (šindá) نر.ج. نوسته، شننه، ښنده.

**شیندی** (šindáy) نر.م. ۱) یو ډول غرني وابښه دي ۲) د حبوباتو داني؛ ۳) و گ. رېدی.

**شین ډولی** (šinḍáwlay) نر.م. مراوی فصل، جینګ او شیته فصل.

**شینډی** (šinḍáy) ښځ. م. کړاو، ربړ، کړاک.

**شین زمری** (šinzmaráy) ص. نـر.م. زړور، دلاور، تکړه او چمتو.

**شین ږیری** (šinzíray) ص. نر.م. ګړویښتی: چې ږیره یې سپین او تور ویښتان ولري.

**شین سترګی** (šinstárgay) ص. نر.م. شینی، شینو، د شنو سترګو خاوند.

**شین سری** (šinsaráy) ص. نـر.م. مې وریجې ویښتان لرونکی.

**شین سرې** (šinsáre) ښځ.م. ۱) یو ډول شنه تروپی ده؛ ۲) سونه، یو ډول هیلۍ ده؛ ۳) ص. ښځ.م. د شین سری مؤنث.

**شین سورخی** (šinsurxáy) نـر.م. ۱) شین بخن رنګ، شین ویره؛ ۲) یو ډول آس دی.

**شینشوبی** (šinšóbay) نـر.م. سارایي ویلنی، وحشي پودینه.

**شین غاړی** (šingăṛay) نر.م. رناګی، یوه خـړه مرغۍ ده چې نسبتاً غټه او شنه غاړه لري.

**شین غټ** (šingăṭ) نـر.م. نیمه پخـه غـله، کچه غله.

**شین غټه** (šingăṭa) ښځ.م. پلوه ګـوته، بـونډه، لاکولکړه، چوخلۍ، د شهادت ګوته.

**شین غزی** (šingăzay) نر.م. د غز یو ډول ونه ده چې پاڼې نه غورځوي.

**شین غوده** (šingŏdá) ښځ.م. تیتارې، یـو ډول مرغۍ ده.

**شین غولانځی** (šingolānǰay) نـر.م. دوزو، مېږو یو ډول ناروغي ده.

**شین کڅ** (šinkác) نـر.م. یو ډول رګ لـرونکې تیږه ده. له دې تیږې نه مردکي هم جوړوي.

**شینکلی** (šinkaláy) ښځ.م. شتکه، شیشکه، شنه لښته.

**شین کوړم** (šinkwṛám) نر.م. شین ډنډ، د اوبو ځلیر، تالاو، د اوبو ډنډ.

**شین کوژی** (šinkóžay) نر.م. د یوې مـرغۍ نوم دی.

**شین کوسی** (šinkośay) نر.م. ۱) ترکوترې غټ یو ډول مرغه دی؛ ۲) یو ډول شنه مرۍ ده.

**شین کومکه** (šinkūmáka) ښځ.م. شین کـومه، سارانۍ کوتره، شنه کوتره، ولغه.

**شینکی** (šinkáy) نر.م. ۱) خـام ختکی؛ ۲) شـنه واښه؛ ۳) رنګه خاورې.

**شینکۍ** (šinkáy) ښځ.م. خاوری، کنډول، خاورینه کاسه.

**شینکی ماهی** (šinkaymāháy) نر.م. یو ډول شین ښکلی کب دی.

**شینګټۍ** (šingaṭáy) ښځ.م. شینغټۍ، شـنه خټل، اومه مېوه.

**شینګړۍ** (šingṛáy) ښځ.م. برج، اټارۍ، اتارس، ټارۍ، ګړۍ، بورجل، مربع شکله برج.

**شینګړوپینګړو** (šingṛópingṛó) ص. نـب. شړانګې وړانګې، شاړې واړې، شړم مړم.

**شینګړه** (šingaṛa) ص. ښځ.م. شیګړه، شنګړه، شـینګړۍ، متیزه: ۱) هغه مېـږوښـه چې لـه مېـږه ځـخـه وتښـتي؛ ۲) هغـه نجلۍ چې تر واده د مـخـه پـه خـپل مـېـړه یـا بـل چـا پسـې وتښتي.

**شینګړی** (šingaṛáy) ص.ښځ.م. و ګ. شینګړه.

**شینګلی** (šingwálay) نر.م. ۱) شین ګل، یو ډول مضر بوټی دی؛ ۲) داوښ غولانځه، یو ډول خوړ بوټی دی چې شین ګل لري.

**شینګی** (šingáy) نر.م. یابو، ټټو یا هغـه اس چې د سپرلۍ نه وي او بارونه پرې وړل کېږي.

**شینلی** (šinaláy) نر.م. شنیلی، تازگی، شنه او تازه واښه یا گیاه.

**شین منځی** (šinmanǰay) ص. نر.م. شین مغزی، یو ډول ختکی دی چې منځ یې شین وي.

**شینو** (šinó) ص. نر.م. شین سترگی.

**شینوالی** (šinwā́lay) نر.م. شین رنګ لرنه، کبود: د بدن پوستکی چې ضربه ووینی.

**شین وبره** (šinwábra) ص.نر.م.ج. شین بخن، شین وشمه، شین ورگی، شین رنګه.

**شینوبی** (šinóbay) نر. ښځ: م. شناوي، نری شلومبې.

**شین ورگی** (šinwárgay) ص.نر.م. ۱) وگ. شین وبره؛ ۲) هغه حیوان چې شین پوستکی ولري.

**شینولی** (šinwálay) نر.م. نیله، یو ډول چنار دی.

**شینی** (šínay) نر.م. ۱) شونی، یوه خزنده ده چې د پسونو او چرگانو په پوستکي کې پیدا کېږي؛ ۲) وچن، خسمار؛ ۳) شینو، شین سترگی.

**شینېدل** (šinedál) مص. ل. شین کېدل، تهوکېدل، زرغونېدل.

**شېوا** (šewá) ص. نب. روان، فصیح، بلیغ، بې تعقیده، رسا.

**شېوه** (šewá) ښځ. م. ۱) لاره، طریقه، روش؛ ۲) ناز، مکېز، کرشمه؛ ۳) ص. نب. کښته، ځوړ، مایل؛ ٤) وگ. ښیوه ۲).

**شېوه کېدل** (šewakedál) مص.مت. وگ. شوه کېدل.

**شیین** (šayín) نر.م. وگ. شند.

# ښ

ښ (ṣin,ṣe) نر.م .ښځ. م.د پښتو الفبې څلېرويشتم توری دی . په پېښور ، ننگرهار او پکتيا کې په «خ» او پـه کندهار کې په يوه ځانگړي ږغ او مخـرج سره چې د «ش» لـه مخـرجه پرته او تر هغه پورته ادا کېږي.

ښاپېرک (ṣāperák) نر.م. و گ. شوپرک.

ښاپېری(ṣāperáy) نر.م(ج. ښاپېري) ۱)شاپېرى ۲)ص. نر.م. (مج.) ښکلی ، ښايسته.

ښاپېرۍ (ṣāperáy) ښـځ. م. شاپېری؛ دښاپېری مؤنث شکل، يوافسانوي خيالي موجود دی.

ښاځه (ṣāǰá) ښځ. م. و گ. شاڅه.

ښاڅ (ṣāc) نر.م. غـرور ، لويي ، کبر.

ښاڅل( ṣācál ) نر.م. وياړل ،نازېدل ، فخر کول.

ښاڅمن( ṣācmán ) نر.م. وياړن ، پيسمن ، مغرور.

ښاڅېدل (ṣācedál) مص. ل. نازېدل ، لـويي کـول؛ په خپلو شتو نازېدل او مغرورېدل.

ښاخ ( ṣāx ) نر.م. (ج. ښاخونه) ۱) ببلې ، ښـونگ ، خونگ؛ ۲) د نسب سلسله.

ښاخدار (ṣāxdā́r)ص.نر.م۱) ښاخ لرونکی ، ښاخور ځانگور ؛ ۲) ښکرور ؛ ۳) مج.غټ ، لوی ، قوي.

ښاخک (ṣāxák) نـر.م. ښکـر ، شاخک ، د کورني طبي علاج يوه وسيله.

ښاخلن (ṣāxlə́n) نر.م. ج. و گ. ښاخدار .

ښاخله(ṣāxlá) ښځ. م(ج. ښاخلې) ترکې ، مچرکی ، ځبلانگه؛ وړوکې ځانگه.

ښاخور (ṣāxawár) نر.م. ج. و گ. ښاخدار .

ښاخه (ṣā́xa) ښـځ. م. روگی ، څـړه لاره ، څړه واټ ، کولی ، بادلی ، نری لاره ،د پلو لاره.

ښاخۍ (ṣāxáy) ښځ. م. شاخې ، سکو ، د درمند او بوسو بادولو يوه آله ده.

ښاد (ṣād) ص.نر.م.ج. ۱)خوښ ،خوشحال ،خوشاله؛ ۲)بريالی ، موفق.

**ښادمن** (ṣādmán) ص. نر.م. ج. ۱) ښاد شوی، خوشال، خوښ؛ ۲) بریالی، موفق.

**ښادنامه** (ṣādnāmá) ښځ. م. د خوښۍ ښکاره کولو یا د یوه چا د هرکلي له امله د ټوپک ډزې کول.

**ښادول** (ṣādawə́l) مص. مت ۱) خوښول، خوشالول، خوشحالول؛ ۲) خیر رسول.

**ښادي** (ṣādí) ښځ. م. خوښي، خوشالي؛ ښادیانه، د خوښیو مراسم.

**ښادیانه** (ṣādyāná) ښځ. م. خوښي، ښادي، خوشالي ښادنامه.

**ښادېدل** (ṣādedə́l) مص. ل. ۱) خوشاله کېدل، خوښېدل؛ ۲) خیر و گټه رسېدل.

**ښادېدنگ** (ṣādedáng) نر.م. و گ. ښادېدنه.

**ښار** (ṣār) نر.م. (ج. ښارونه) شهر؛ د انساني ټولنو داوسېدو ځای چې آبادي، کورنه، سرایونه، پوهنتون تیاترونه او داسې نور ولري.

**ښارک** (ṣārák) نر.م. ۱) د لرگي یوه وړه ټوټه ده چې د مېچنې تیرک پکې گرځي؛ ۲) ښارگوټی.

**ښارکوټ** (ṣārkót) نر.م. د ښار جنگي کلا، بالاحصار.

**ښارگ** (ṣārág) نر.م. ښه رگی، ښارگی، شارگ، شهرگ، ورید، د مرۍ غټ رگ.

**ښارگوټی** (ṣārgóṭay) نر.م. ووکی ښار، کوچنی ښار، ورکوټی ښار، ښارک، ښارگی.

**ښارگي** (ṣāragí) ص.نب. وارخطا، تلولی، پرېشانه، له وېرې بېهوښه کېدل.

**ښارگی** (ṣār gáy) نر.م. و گ. ښارگوټی.

**ښارمېشتی** (ṣārméṣ̌tay) ښاري، د ښار اوسېدونکی.

**ښارمېشتي** (ṣārmeṣ̌tí) ښاریتوب، ښاري استوگنه، ښاري ژوند.

**ښارو** (ṣāró) ښځ. م. (ج. ښاروگانې) شارو، مینا، مینکه، یو تور مرغه دی چې وینا هم کوي.

**ښاروال** (ṣārwā́l) ص.نر.م. ۱) د ښاروالۍ یا بلدیې رئیس، د ښاري چارو د سمبالولو موظف مشر؛ ۲) ص.نر.م.ج. ښاري، د ښار، په ښار اړوند.

**ښاروالي** (ṣārwālí) ښځ. م. بلدیه، د ښاري چارو د تنظیم او د ښاریانو د هوساینې د وسایلو د برابرولو یوه موسسه ده.

**ښاروگی** (ṣārogáy) ښځ. م. د ښارو مصغره بڼه.

**ښاره** (ṣārá) ښځ. م. ۱) ښار غونډې لوی کلی؛ ۲) اشاره، زونگه، رمز.

**ښاري** (ṣārí) ص. نب. ۱) د ښار، په ښار اړوند؛ ۲) د ښار اوسېدونکی؛ ۳) متمدن، مهذب.

**ښاغېپ** (ṣāğáp) ص. نر.م. سرابښ، الوی، سولن، وږ سترگی، اروا وړی.

**ښاغل** (ṣāğə́l) مص. مت. ۱) ښایسته کول، ښکلی کول؛ ۲) ښه گڼل؛ ۳) چڼول، غوره کول.

**ښاغلتوب** (ṣāğaltób) نر.م. ۱) ښاغلتیا، محترموالی؛ ۲) ښایست، ښکلا.

**ښاغلی** (ṣāğálay) ص.نر.م ۱) ښه مېړه، پتیالی، محترم، عزتمند؛ ۲) ستایل شوی؛ ۳) ښکلی، ښایسته.

**ښالمه** (ṣā́lma) ښځ. م. غاز، پای، خالمه، شیمه، د اوږو سرېښ.

**ښالنگ** (salang) ص.نر.م ۱) کچل، کجی، کچل؛ ۲) بوخت، لگیا، اخته.

**ښالیز** (ṣāliz) ص.نر.م. ښالېز، ښېبرازه، سمسور.

**ښالیزي** (ṣālizi) ښځ. م ۱) ښېبرازي، سمسورتیا؛ ۲) اوبلن، اوبلنتیا.

**ښامار** (ṣāmar) نر.م. (ج. ښاماران) لوی مار، ستر منگور.

**ښانده** (ṣāndá) ښځ. م. ۱) پېژندنه، پېژندګلوي، بلدتیا، معرفت؛ ۲) اره، تړاو ؛ ۳) نر. ج. شنل، ښنده، شنده، نوسته، شننه.

**ښانک** (ṣānák) نر. م. ښنک، خانک، ښانکی، یو ډول لرګین پلن و اوار لوی لوښی.

**ښانکی** (ṣānakáy) نر. م ۱) ښنکی، ووړکی ښانک ۲) هغه ډوډۍ چې دواده په سبا د نجلۍ د تولې پلرګنۍ له خوا د هلک کورته ورلېږل کېږي.

**ښانګر** (ṣāngár) نر. م. ځانګه، اښنګړ، ښنګر، ښانګړ؛ د پښې د تلې خار ښتېدل.

**ښانګور** (ṣāngawár) ص. نر. م. ج. ښانګه ور، هغه انسان یا حشره چې اوږدې پښې لري.

**ښانګورمېږی** (ṣāngawarmezáy) نر. م. ښانګه ورمېږی، یو ډول اوږد پښېزی مېږی دی.

**ښانګه** (ṣánga) ښځ. م. ۱) د پښې له ښنګري څخه ترکوناتو پورې برخه؛ ۲) د ژې پښانګه.

**ښانګۍ** (ṣāngáy) ښځ. م. ښاخۍ، سکو، شانګۍ.

**ښاوات** (ṣāwát) نر. م. یوه کولبه ځمکه، یوه اندازه ځمکه، یوه قلبه ځمکه.

**ښاول** (ṣāwál) نر. م. شاول.

**ښاوندی** (ṣāwandáy) نر. م. سرورخ، وتې، د اوبو سربند.

**ښایست** (ṣāyást) نر. م. ښکلا، حسن، ډول، ښائیست توب، ښایسته والی.

**ښایستوکی** (ṣāyastúkay) ص. نر. م. ۱) ډېر ښکلی، ګلالی؛ ۲) د ښایسته مصغر.

**ښایسته** (ṣāyastá) ص. نب. نر. ښځ. م. ښکلی، أغلې، ډولي، حسین (تع.) وګ. ښکلی.

**ښایه** (ṣā́ya) ف. ۱) ښیه، ښودد، وایه، ورښوده، ورزده کاوه؛ ۲) ورښیه، ورزده کوه.

**ښايي** (ṣāyí) ق. ۱) په کار ده، مناسبه ده، لازمه ده ۲) شاید، احتمالاً، ممکنه ده؛ ۳) ف. ورښیي، ښیي، ورزده کوي، د مفرد غایب صیغه ده.

**ښایېدل** (ṣāyedál) مص. ل. لازمېدل، مناسبېدل، موزونېدل.

**ښپ** (ṣap) ص. نر. م. کنډاس، کړشوپ، غابښ وتلی، کنډول.

**ښپېته** (ṣpéta) ښځ. م. پانه کونده، کاږه، خسپنی، پلیګده، پانه کونډه، یو ډول جزا ده.

**ښپېتول** (ṣpetawál) مص. مت. پانه کول، شپېته کول، فانه کول، په پانې سره جزلېورکول.

**ښتره** (ṣatrá) ښځ. م. (ج. ښترې) د واورو او نورو شیانو پاکولو آله.

**ښتری** (ṣatráy) ص. نر. م. سوداګر هندو.

**ښتګری** (ṣatgáray) نر. م. (ج. ښتګري) ښنګری، ګیتی، خنګری.

**ښځکی** (ṣaǰakáy) ښځ. م. د ښځې مصغر.

**ښځلی** (ṣaǰálay) نر. م. سورغوږی، ښورکی، تروکی.

**ښځمني** (ṣaǰmaní) ښځ. م. ښځوالی، ښځتوب، ښځې والی، د ښځې صفات و خواص لرنه.

**ښځمنې** (ṣaǰmané) ښځ. ج. ښځې، زنانه.

**ښځمینه** (ṣaǰmína) ص. نب. ښځینه، د ښځې.

**ښځنوکی** (ṣaǰanūkay) نر. م. ښځونکه، ښځونکی ښځولی؛ ۱) هغه نر چې خصوصیات یې د ښځو په څېر وي؛ ۲) مج. بې غیرته.

**ښځنی** (ṣaǰanáy) ص. نر. م. ۱) د ښځو، ښځینه ښځینی؛ ۲) ښځنوکی.

**ښځه** (ṣáǰa) ښځ. م (ج. ښځې) د نر مقابل؛ ماینه، مېرمن، مائدینه، عورت.

**ښځی** (ṣáǰay) نر. م. د ښځې تناسلي آله.

ښځې توب (ṣaǰetób) نـر.م. ۱) ښځه توب، ښځوالی؛ ۲) د ښځې غوره صفتونه درلودل.
ښځرلی (ṣacárlay) نر.م. سکنه، ځوولی، ځولی؛ د ترکاڼي یوه آله ده.
ښځیاکه (ṣacyā́ka) ښځ. م. ښځویځکه، توتکی، غچی، توتکرکې، کوچی.
ښخ (ṣax) ص. نـر.م.ج. ۱) خښ، دفن، مدفون؛ ۲) ننوتی، منډل شوی؛ ۳) ایښودلی، لګولی.
ښخند (ṣaxánd) نر.م. ښښته، ښښتنه، لن غښکی، پلندی، یزه، ښخندی، د سرښښو ډنډ، هغه ځای یامعامله چې سړی ترې ځان نه شي خلاصولای.
ښخنډی (ṣaxandə́y) ښځ. م. د کوچنیانو د یوې لوبې نوم دی.
ښخوالی (ṣaxwā́lay) نـر.م. ۱) خښوالی، دفن والی؛ ۲) کلکوالی؛ ۳) لګوالی.
ښخول (ṣaxawə́l) مص.مت. ۱) خښول، دفن کول؛ ۲) ننبغول، لګول؛ ۳) منډل.
ښخوونی (ṣaxawū́nay) نر. م. د ښخولو آله.
ښخېدل (ṣaxedə́l) مص.ل. ۱) خښېدل، دفن کېدل؛ ۲) ننبغېدل؛ ۳) منډل کېدل؛ ٤) کلکېدل.
ښرا (ṣará) ښځ. م. (ج. ښراوې) و ګ. ښېرا.
ښرغلی (ṣarğálay) نـر.م. مېږتون؛ د مېږیانو کور، د مېږیانو او نورو حشرو کور.
ښرکنی (ṣarkanáy) ښځ. م. ځرکنی، کنډواله، خرابه، ویرانه.
ښرن (ṣarán) ص.نر.م. ښورنده، ښوره ماغه، ښژینه، ښوره زار، ښوره لرونکی.
ښرونکی (ṣarū́nkay) نر.م. یو ډول بوټی دی چې پاڼې یې نرۍ او سور ډنهر لري.
ښروه (ṣárwa) ښځ.م. خروه، ښېروه؛ یو ډول غرنی ونه ده.

ښره (ṣará) ښځ. م. ښوره، شوره، شناګه، شنګل.
ښره مغزه (ṣaramáğza) ص. نب. ښوره ناکه، ښوره زاره، ښوره لرونکې، ښرن.
ښکار (ṣkār) نـر.م. ون، ونا؛ دسپورت یا غذا موندلو لپاره د وحشي حیواناتو یا مرغانو ویشتل او نیول.
ښکارځای (ṣkārǰā́y) نر.م. ښکارځی، ښکارغلی، د ښکارځای.
ښکارځن (ṣkārǰán) ص. نـر.م.ج. ښکاري، ونی، ښکارزن.
ښکارغالی (ṣkārğā́lay) ښکارغلی، ښکارځای.
ښکارل (ṣkārə́l) مص. مت. ۱) شکارل، توش کول، د تکارل، سپي چاته یا ښکار ته پارول؛ ۲) مج. لمسول، کشکارل.
ښکارند (ṣkāránd) ص.نر.م. و ګ. ښکارندوی.
ښکارندوی (ṣkārandóy) نـر.م. ۱) ښکاره، څرګند، ښکارنده؛ ۲) اوځار، مشهور.
ښکارندویي (ṣkārandoyí) څرګندویي، استازګرنه، نماینده ګي.
ښکارنده (ṣkāránda) ص. نب ۱) و ګ. ښکارند؛ ۲) ښکارندونی، سله، مرکچي، نماینده.
ښکاروز (ṣkārwáz) نر.م. ښکوروز، بزګر، کریګ، کرګر، دهقان.
ښکاروزتوب (ṣkārwaztób) ښکاروزي، بزګري، دهقاني، زمینداره، د کرکیلې کسب.
ښکارول (ṣkārawə́l) مص. مت. ۱) ښکاره کول، څرګندول؛ ۲) ښکار کول، ونا کول؛ ۳) په ننبه کول؛ ٤) ښوول، ښودل، لوځول.
ښکاره (ṣkārá) ص. نب. ۱) جوت، څرګند، ببور؛ ۲) نـر.م. د سپښتو یو ډول لوبه ده؛ ۲) یو ډول سپین ډوله بوټی دی.

ښکاري (ṣkārí) ص. نب. وني، ښکارځن؛ هغه ځوک یا حیوان یا مرغه چې ښکار کوي.

ښکارېدل (ṣkāredə́l) مص. ل. ۱) ښکارکېدل، د ښکار چاره ترسره کېدل؛ ۲) ځرګندېدل.

ښکالو (ṣkāló) ښځ. م. ۱) ځپهار، د پښو اواز؛ ۲) نښه، علامه؛ ۳) پس پسی، غوږی.

ښکالوه (ṣkālawá) ص. نب. ۱) ګران، سخت؛ ۲) ښځ. م. قرتې، کړکړ، زیاتې خبرې کول.

ښکانځه (ṣkánǰa) ښځ. م. ښکنځا، زیاړه.

ښکتنی (ṣkatanáy) ص. نر. م. لاندینی، کوزنی، لرنی، کښتنی.

ښکته (ṣkáta) ق. کښته، کوز، لاندې، لر.

ښکته والی (ṣkatawā́lay) نر. م ۱) ځوړوالی، ځوړه مخ کښته، کوزوالی؛ ۲) تهنه، کښتی.

ښکر (ṣkár) نر. م. (ج. ښکرونه) ښاخ، ۱) د وزې، غوا، هوسۍ... په سرکې دوه د هډوکو راوتلي شیان؛ ۲) د ژرندې توتکه.

ښکرور (ṣkarawár) نر. م. ج. ۱) ښکری، ښکر لرونکی؛ ۲) مج. زورور، د زور خاوند.

ښکروره (ṣkarawára) ښځ. م. ۱) پشپړی، یو ډول مرغۍ ده؛ ۲) ص. ښځ. م. د ښکرور مؤنث.

ښکری (ṣkaráy) نر. م. ۱) کرېس، کروستی، د حبوباتو پلی؛ ۲) ص. نب. ښکرور، ښکروره.

ښکرۍ (ṣkaráy) ښځ. م. شکرۍ، له مزري ځخه جوړه شوې توکرۍ.

ښکل[1] (ṣkál) مص. مت. ۱) باسل، کاږل، ایستل، ویستل؛ ۲) لیرې کول؛ ۳) لیکل، کښل.

ښکل[2] (ṣkwál) نر. م. وچپه، خولګۍ، مچو، مچوکه.

ښکلا (ṣkulá) ښځ. م. (ج. ښکلاوې) ښایست، حسن، ډول، جمال.

ښکلا پېژندنه (ṣkulāpežandána) ښځ. م. ښایست پوهنه، ښایست پېژندنه، د هنر فلسفه.

ښکلل (ṣkwalə́l) مص. مت. ښکلی کول، ښایسته کول، ډولي کول، تزیینول.

ښکلنه (ṣkulána) ښځ. م. سینګارونه، پسولل، پسولنه، تزیین.

ښکلونکی (ṣkulalúnkay) نر. م. سینګاروونکی، پسولونکی، متزین.

ښکلول (ṣkwalawə́l) مص. مت. و ګ. ښکولول.

ښکلی[1] (ṣkwálay) ص. نر. م. ښایسته، ډولي، حسین.

ښکلی[2] (ṣkə́lay) مف. نر. م. ۱) باسلی، ایستلی، وېستلی؛ ۲) کښلی، لیکلی.

ښکنځا (ṣkanǰā́) ښځ. م. ۱) ښکنځل، ښکنځله، کنځا، زیاړه؛ ۲) سپکتیا، اهانت.

ښکنځل (ṣkanǰə́l) مص. مت. نر. ښکنځا کول، کنځل، زیاړې کول، چاته بد و رد ویل.

ښکنل (ṣkanə́l) مص. مت. ترټل، سخت ویل.

ښکنه (ṣkə́na) ښځ. م. کښنه، ویستنه، باسنه.

ښکولول (ṣkwalawə́l) مص. مت. ښکلول، مچې کول، مچول، مچو اخیستل.

ښکوم (ṣkū́m) نر. م. ورم، پند، نصیحت، نغوته.

ښکومی (ṣkū́may) ص. نر. م. خواخوږی، خیرخواه، خیرغوښتونکی.

ښکوی (ṣkuy) نر. م. لیکنه، کښنه.

ښکې (ṣke) ق. ۱) کښته، ښکته، کوز، لر، لاندې؛ ۲) پیل، شروع.

ښکېل (ṣkel) ق. نښتی، ګېر، ترلی، بند.

ښکېلاک (ṣkelā́k) نر. م. استعمار.

ښکېلاکګر (ṣkelākgə́r) فا. نر. م. استعمارچي، استعمارګر.

ښکېلول (ṣkelawә́l) مص. مت. ۱) بندول، تړل، نښلول، راګيرول؛ ۲) دڅاروي وتړل.

ښکېلېدل (ṣkeledә́l) مص. ل. ۱) تړل کېدل، نښلېدل، راګيرېدل؛ ۲) پر غړک کېدل.

ښکېنی (ṣkenáy) ص. نر.م. ښکينی، لړنی، ښکتنی. کوزنی. لاندېنی.

ښکېنی وژی (ṣkenaywáẑay) نر.م. لوی وژی، د باسليق رګ، دانسان په لاس کې يو رګ دی.

ښکيه (ṣkıyá) ق. له لاندې خوا، دکښتې خوا.

ښګلونی (ṣaglū́nay) نر. م. يو ډول تيږه ده چې د لوبو ډبرينې مردکې پرې سولول کېږي.

ښل (ṣal) نر.م. ښيل، اړکينه لاره، د لرګي زينه، اندرپايه، د لرګي ګرځنده زينه.

ښلونه (ṣlóna) ښځ. م. ګرمکه، ګرمکې، وړې وړې دانې دي چې د ګرمی له امله پر بدن راخېژي.

ښمڅ (ṣmác) ښځ. م. سمڅه، سمڅ، ښمڅه، ګاره، غار، سپونغاړی.

ښمر (ṣamә́r) نر.م. ګټه، نفع، خير، فايده.

ښنځری (ṣanǰә́ray) نر.م. سنځری، تنځری، تمځری، يو ډول مرغۍ ده.

ښنځه (ṣә́nǰa) ښځ. م. (ج. ښنځې) دمبله، شلنه، ښنجکی، سينجکی، لونه، دانه.

ښند (ṣand) نر.م. افراط، زياتی، له حده تېری.

ښند پال (ṣandpā́l) افراطي، تېری کوونکی.

ښندل (ṣandә́l) مص. مت. ۱) پاشل، شيندل؛ ۲) جارول، ځارول، قربانول، بخښل.

ښندواله (ṣandwā́la) ښځ.م. ښندپالنه، افراط پالنه.

ښنده (ṣandá) نر.ج. ۱) شينده، نوسته؛ ۲) قربانوه، ځاروه، بخښنه؛ ۳) زياتی.

ښنډی (ṣandáy) ښځ. م. وګ. شنډی ۲).

ښنغلی (ṣanğә́lay) نر.م. مغانده، سرينښه، غبنده، ښنګسری، ښنګښر، مغانه، غبندی.

ښنک (ṣanák) نر.م. ۱) وګ. ښانک؛ ۲) ښنګ؛ کلکه شوې ونه؛ ۳) کنګل شوې ځمکه.

ښنکی (ṣanakáy) نر.م. وګ. ښانکی.

ښنګ (ṣә́ng) نر.م. ۱) شنګ، ښنوش، يو ډول بوټی دی چې خړې پاڼې لري؛ ۲) وګ. ښانک.

ښنګر (ṣangár) نر.م. وګ. ښانګر.

ښنګروښ (ṣangarwáṣ) نر.م. ښنګراوښی، وابښی، د څېلۍ غوټه.

ښنګری (ṣangáray) نر.م. ۱) ښنګر، ښنګروابښی، يو راز بوټی دی؛ ۲) دجولاد تانستې يوه آله ده

ښنګسری (ṣangsáray) نر.م. وګ. ښنغلی.

ښنګل (ṣangә́l) نر.م. ښنګله، شناګه، ښوړه، شنګل، شينګل، شوره.

ښنګلن (ṣanglә́n) نر.م. ښوره چن، تريو، ښوزرن.

ښنګلۍ (ṣangaláy) ښځ. م. منګ ځمکه، کنه مته؛ هغه کلکه او سخته ځمکه چې اوبه نه جذبوي.

ښنګلي مالګه (ṣangalimā́lga) ښځ. م. له ښنګل څخه جوړه شوې مالګه.

ښنګورۍ (ṣangoráy) ښځ.م ج. متيزه، شنګړه، ډنه، شيګړه (وګ. شينګړه).

ښنګۍ (ṣangáy) ښځ. م. وندر، ځنګی، غړوندی، هغه پړی چې د څاروي په غاړه کې اچول کېږي.

ښنه (sna) ښځ.م. (ج. ښنې) ۱) ښانګه، ښنيه، دورانه ذښنی خوا؛ ۲) اندام، توټه، بند بند.

ښنيه (ṣna) ښځ. م. ۱) ښنه؛ ۲) بند بند؛ ۳) د ورانه کونډۍ، د کوناټې هډوکی.

ښو (ṣū) نر.م. خو، د دوو ګوتو په اندازه توکردی چې د ښنګري د بوټي په اوبو يې مينځي او بيا يې سره رانغاړي چې دې ته ښو وايي.

**ښوانه** (ṣwana) نر. م. خانلی، ښونه، زیتون، ښوون.

**ښوبه** (ṣóba) ښځ. م. څوخه، څوخکه، توتی، شیردهن.

**ښوبی** (ṣwabáy) ص. نر. م. بې وسلې، تش لاسی، غیر مسلح.

**ښوپه** (ṣopá) ص. نر. م. ج. شوپا، شوپه، شوپړ، نښتنه.

**ښوڅل** (ṣūcál) مص. مت. تیڅل، سوری کول، سوری ایستل، برمه کول.

**ښوڅنی** (ṣūcənáy) ښځ. م. تیڅی، برمه.

**ښوڅه**[1] (ṣūca) ښځ. م. سوری، سوره، غار.

**ښوڅه**[2] (ṣóca) ښځ. م. ۱) د ښلونه، گرمکه؛ ۲) ص. نب. مج. بې صبره، بې حوصلې.

**ښودل** (ṣodál) مص. مت. ۱) ښوول؛ ۲) لارښودنه کول، رهنمایي کول؛ ۳) وروزده کول.

**ښودونکی** (ṣodū́nkay) فا. نر. م. ۱) ښوونکی، استاذ، معلم؛ ۲) لارښود.

**ښور**[1] (ṣor) نر. م ۱) ښورېدنه، خوځېدنه، حرکت؛ ۲) ښار؛ ۳) د مېږیانو او مچیو کور.

**ښور**[2] (ṣūr) نر. م. منداوو، راکول، غاښور.

**ښوربش** (ṣoráṣ) نر. م. ښوربښت؛ ۱) حرکت، تلاطم؛ ۲) بلوا، اړودوړ، انارشي؛ ۳) هیجان.

**ښورکی** (ṣorakáy) نر. م. ښوری، تروکی، تریوکی، سورغوړی.

**ښورماښور** (ṣormāṣór) نر. م. ۱) شور و غوغا؛ ۲) دچینجیانو او نورو حشرو ډېروالی.

**ښورماغه** (ṣormāġā́) ص. نب. ښورن، ښوره ناکه، ښورنه، ښوره لرونکې ، شوره زاره.

**ښورن** (ṣorán) ص. نر. م. ښوره ناکه، ښوره زار.

**ښورند** (ṣoránd) ص. نر. م. ۱) ښورېدونکی، خوځېدونکی؛ ۲) لړزېدونکی، ړچېدونکی.

**ښوروا** (ṣorwā́) جن. ښځ. م (ج. ښوروا وې) شوروا، زیمنه، زومنه، کتهو، ښروا، شوربا، سوپ.

**ښورواگی** (ṣorwāgáy) جن. ۱) لږه ښوروا، کمه ښوروا؛ ۲) بې غوښو ښوروا؛ ۳) وگ. شکنه.

**ښورول** (ṣorawál) مص. مت. ۱) خوځول، حرکت ورکول؛ ۲) منجول، لړزول؛ ۳) مج. تکان ورکول، راپارول.

**ښوره** (ṣorá) جن. ۱) شوره، شناگه، ښنگل، ښنگله؛ ۲) پارو؛ ۳) یو ډول بوټی دی.

**ښوری** (ṣóray) نر. م. ۱) وگ. ښورکی؛ ۲) یو ډول ناروغي ده چې د څارویو په سترگو کې پیدا کېږي.

**ښورېدل** (ṣoredál) مص. ل. ۱) خوځېدل، حرکت کول؛ ۲) منجېدل، ړچېدل؛ ۳) پارېدل.

**ښولنی** (ṣolanáy) نر. م. ۱) یو ډول بوټی دی؛ ۲) کوچنی ښوون، د ښونه د ونې مصغر.

**ښومک** (ṣomák) نر. م. یو ډول ناروغي ده چې خرهٔ وژني.

**ښون** (ṣowán) نر. م. وگ. ښوانه.

**ښونگ** (ṣūng) نر. م. ۱) غاو، قوتی، هغه سوری چې (د مرد کو په لوبه کې) مردکي وراچوي؛ ۲) ښونگی، لړڅه (اوبه)؛ ۳) د یوه شي څنډه.

**ښونگری** (ṣūngaráy) نر. م. ښنگری، شونگری؛ ۱) د پښې بجلکه؛ ۲) دغواوو، غېلو او هوسیو گوتونه، د آسو، خرو او غاترو سوې. کړاوې.

**ښونگړ** (ṣungáṛ) نر. م. پنبه بېدېدل، پنبه ویده کېده.

**ښونگه** (ṣónga) ښځ. م. څنډه، گوټ، ژی.

**ښونگی** (ṣū́ngay) نر. م. ۱) گوډ، نگوښی، گوډی؛ ۲) ښونگ، لړڅه (اوبه).

ښونلی (ṣonalǻy) نر.م. ۱) غوړګی، د ښونه کوچنۍ ونه؛ ۲) دښونه د ونې مېوه او دانې.
ښونه (ṣonǻ) نر.م. ښون، ښوون، د زيتون ونه.
ښوول (ṣowǻl) مص. مت. ۱) ښودل؛ ۲) ورزده کول، تعليم ورکول؛ ۳) وربنکاره کول.
ښوولی (ṣowǻlay) نر.م. مدلول، دلالت کړی شوی، مانا.
ښوونپښويه (ṣowanpṣoya) ګر. ښوونځيواله ښويه، تعليمي ښويه، د ښوونځي ګرامر.
ښوونځی (ṣowanǰǻy) نر.م (ج. ښوونځي) مکتب؛ د زده کړې او ښوونې ځای، د ليک لوستزده کړې او د علومو د تدريس ځای.
ښوونډ (ṣowǻnd) نر.م. دال، دلالت کوونکی، لفظ.
ښوونکی (ṣowū́nkay) نر.م. ۱) معلم، استاذ، استاد، لاربنود؛ ۲) ښودونکی؛ ۲) وربنکاره کوونکی.
ښوونه (ṣowǻna) ښځ. م. ۱) ښودنه، ورزده کونه، تعليم ورکول؛ ۲) درس ورکول، تدريس کول.
ښوونه او روزنه (ṣowǻna aw rozǻna) ښځ. م. د ښوونکي دنده او مسؤليت، مېتود، ښوونه، تعليم و تربيه.
ښوونيز (ṣowaníz) نر.م. په ښوونې اړوند، تعليمي، تدريسي.
ښوهول (ṣwahawǻl) مص. مت. ښويول، غولول، دروهل.
ښوهېدل (ṣwahedǻl) مص.ل. ښويېدل، غولېدل، دروهېدل.
ښوی (ṣway) ص. نر.م. ج. ۱) ښويه، اوار، د څېږ مقابل؛ ۲) مج. غولوونکی؛ ۳) نر.م. و ګ. ډډګی؛ ۲) راشبيل، راشپيل.

ښوی سری (ṣwaysarǻy) نر.م. دوه مخی سړی، منافق، په ژبه پوست و پاته ورو ست.
ښوی ښالاک (ṣwayṣālǻk) ق. ۱) و ګ. ښوی ښهاک؛ ۲) د کلا او دېوال يو صفت دی چې دېوالونه يې ښوی، مستحکم وي؛ ۳) ترېدلی، ترهېدلی؛ ٤) تش تور، تش لاس.
ښوی ښهاک (ṣwaysahǻk) ق. ښوی ښالاک، ناڅاپه (ورکېدنه)، ښوی ښاک ورکېدنه، نابېره ورکېدنه.
ښويکی (ṣwayakǻy) ښځ. م. د يوې مرغۍ نوم دی.
ښويکی (ṣwayakǻy) ص. نر.م. و ګ. ښوی سړی.
ښوين (ṣawín) نر.م. د ښه نظر څښتن، د ښه نظر خاوند.
ښويند (ṣwayǻnd) ص. نر.م. ښوينده، ښوی شی، لشم (خيز).
ښويندوکی (ṣwayandū́kay) نر.م. ۱) هغه څوک چې ښويېږي؛ ۲) غولېدونکی، دروهېدونکی، غلطېدونکی؛ ۳) هغه ځای چې خلک ځانونه باندې ښويوي.
ښويندی (ṣwayǻnday) ص. نر.م ۱) ښوی، ښويه، صاف؛ ۲) ښوېنديز (يخمالک).
ښويوالی (ṣwaywā́lay) نر.م. ۱) ښويتوب، لشمتوب؛ ۲) مج. چالاکي.
ښويول (ṣwayawǻl) مص. مت. ۱) په کنګل يا بل ښوی شي ښهول يا غورځول؛ ۲) دروهل، خطا ايستل؛ ۳) اوارول، هوارول.
ښويه (ṣwǻya) ص. نب. و ګ. ښوی۱).
ښويېدل (ṣwayedǻl) مص.ل. ۱) سليپ کول، په کنګل يا بل ښوی شي غورځېدل؛ ۲) غولېدل ۳) بې لارې کېدل.

ښه⁽¹⁾ (ṣa) ص. نــر.م.ج. ۱) د صفت په توګــه او د رضايت، تاييد، ستاينې، خوښۍ ښرګندولـو لپاره يوه کليمه د: ۲) رغېده، روغتيا مونده، رغېدنه.

ښه⁽²⁾ (ṣa) ص. نر.م. نېکي، مرسته، لاسنيوی.

ښها (ṣahā́) ښځ.م. ۱) نعمت؛ ۲) بخښښ، ورکړه، پېښا، بخښنه.

ښهاک (ṣahā́k) ص. نر.م. ج. ښوی ۱).

ښهانه (ṣahā́na) ښځ. م ۱) ښښکنه، ښهانه، نېکي، ښه ښېګړه؛ ۲) فايده، ګټه.

ښه اوبد (ṣaawbád) نر.ج. .بد.) که يو شاعر په خپل شـعر کې ځينې داسې کليمې راوړي چې اول بد او وروسته مدحه ځنې جوړه شي.

ښه ترا (ṣatará) ق. په ښه ډول، په ښه توګه.

ښه ترښه (ṣatarṣá) ص.نر.م.ج. ق. لاښه، ښه تره، بهترين، تر هغه لا ښه.

ښه توب (ṣatób) نر.م. ښه والی.

ښه چاری (ṣačā́ray) ص. نر.م. ښه کړونی، نېک، نېک عمله.

ښه چارې! (ṣačā́re) ند. د سلام او خيرخـواهۍ ښرګندونه ده.

ښه راغلې (ṣarā́ğle) ند. هر کله راشې! ستړي مه شې! په خير راغلې، ښه راغلاست.

ښه کلو (ṣakaló) ښځ. م. ښه ورځ، رفاه، نېکمرغي.

ښه کول (ṣakawál) مص. مت. ۱) جوړول، رغـول (له ناروغۍ)؛ ۲) نېکي کول، مرسته کول.

ښه کېدل (ṣakedál) مص. ل. ۱) روغـېدل، لـه ناروغۍ جوړېدل؛ ۲) پخلا کېدل.

ښهل (ṣahál) مص.مت. ۱) بې برخي کول، محرومه کول، شړل؛ ۲) عاق کول، عاقول.

ښه لوهی (ṣa lóhay) د ښې اشتها درلودونکی.

ښه مرغ (ṣamárğ) نر.م. ښه بخت، ښـه طالع، ښه نصيب، نېک پال، ښه ستوري.

ښه مرغی (ṣamárğay) ص.نر.م. بختور، نېکمرغه نېکبخت، نېکبخته.

ښی (ṣay) ص. نر.م. راسته، راست، د کيڼ مقابل.

ښې (ṣe) ښځ. م. ښين، د «ښ» اواز و تلفظ.

ښيالمې (syā́lme) ښځ. م. چـومی، وښ، ناړې، لانې، لياړې؛ د خولې لاړې.

ښيځ (ṣíj) نر.م. غونډک، غـونډل، کوکي، (و ګ. غونډل).

ښېځه (ṣéja) ښځ. م. شړي، خړښښځی، نرغـوټ، د ګندنې په څېر يو ډول غرنې سابه دي.

ښېرا (ṣerá) ښځ. م. (ج. ښېراوې) ښېراه، ښـرا؛ د دعا ضد.

ښېراز (ṣeráz) ص. نــر.م. ۱) تازه، سمسور؛ ۲) آباد؛ ۳) مج. ښاد، لحوښ، خوشاله.

ښېرازتوب (ṣerāztób) نر.م. ښېرازتيا، ښېرازي؛ ۱) سمسورتيا؛ ۲) آبادي؛ ۳) خوښي.

ښېرازول (ṣerāzawál) مص.مت ۱) سمسـورول؛ ۲) آبادول؛ ۳) خوښول، خوشالول.

ښېرازېدل (ṣerāzedál) مص. ل. ۱) تازه کېدل، سمسورېدل؛ ۲) ودانېدل؛ ۳) خوښېدل.

ښېرون (ṣerū́n) نر.م. د ښونه دونې په څېر يو ډول غرنۍ ونه ده.

ښېرونه (ṣerwána) ښځ.م. تيتاقه، وورې، اوګی، دشنو يا شنۍ (ونه)، د خنجک ونه.

ښېروه (ṣeráwa) ښځ.م. ښـروه، شـېروه، يو ډول غرنۍ ونه ده چې کلکې لښتې لري.

ښېره (ṣerá) ښځ. م. و ګ. ښېرا.

ښيښه (ṣiṣá) ښځ.م ۱) شيشه، هغه رڼـه تخته چې په کړکيو کې اچول کېږي؛ ۲) هينداره، آيينه.

**ښی گرځ!** (ṣaygár‍ṛ) امر. ند. د عسکري یوه قومانده ده.

**ښېګړه** (ṣegáṛa) ښځ. م. و گ. ښېګڼه.

**ښېګڼه** (ṣegána) ښځ. م. (ج. ښېګڼې) ۱) ښه، ښېګړه، نېکي، مرسته؛ ۲) ښه والی، فایده من. ګټور توب.

**ښیل** (ṣayál) مص. مت. و گ. ښودل او ښهل.

**ښېلی** (ṣélay) نر. م. ۱) و گ. سیلۍ؛ ۲) شدوېی.

**ښینه** (ṣína) ښځ. م. خوښینه، خوشینه، د مايني خور، د ښځې خور.

**ښیونی** (ṣayúnay) فا. نر. م. ښودونکی، ښوونکی، لارښود.

**ښېوه** (ṣewá) ښځ. م. ۱) ډول، سینګار، آرایش؛ ۲) ناز، کرشمه.

**ښېوه گر** (ṣewagár) ص. نر. م. ډولي، سینګاري.

**ښېیل** (ṣeyál) مص. مت. و گ. ښوول.

# ص

**ص**[1] (swát) نر.م. د پښتو الفبې پنځه ویشتم توری چې ابجدي ارزښت یې ۹۰ دی.

**(ص)**[2] (swát) نر.م. دصلی الله علیه وسلم لنډون.

**صابر** (sābír) ص. نر.م.ج. (ج. صابران) ۱) صبر کوونکی، پېښخیالی؛ ۲) قانع؛ ٤) حوصله ناکی

**صابون** (sābún) نر.م. یوه ماده ده چې دمایع، پوډر، چکی... په شکل وي، له مښلو سره ځګ کوي او خلک یې دځان و کالیو پرېولو لپاره کاروي.

**صابي** (sābí) ص.نر.م. صائبین، صائبه، مشرک، د بت یا ستورو عبادت کوونکی.

**صاحب** (sāhíb) نر.م. ۱) خاوند، څښتن، مالک؛ ۲) یار، مل، ملګری، اشنا.

**صاحبزاده** (sāhıbzādá) ښـځ. م. د روحاني شخص اولاده.

**صاحب منصب** (sahíbmansáb) نر. م. عسکري منصبدار، په اردو کې دلوړې رتبې لرونکی.

**صاحبي** (sāhıbí) نر.م.ج. ۱) وګ. سابي؛ ۲) یو ډول وربښمین ټوکر دی.

**صادر** (sādír) ص. نر.م.ج. ۱) بهر ته تلونکی، لېږل کېدونکی؛ ۲) بهرته راګرځېدنه؛ ۳) مج. څرګندېدونکی، پېښېدونکی.

**صادرات** (sādırát) نر.ج. صادرېدونکي شیان، ترملک د باندې استول کېدونکي شیان.

**صادرول** (sārdırawál) مص.مت. لېږل، استول، بهر ته استول.

**صادره** (sādırá) ص. نب. د لېږلو، د استولو، په صادر پورې تړلی، د وارده ضد.

**صادرېدل** (sādıredál) مص. ل. لېږل کېدل، استول کېدل، خارج ته تلل.

**صادق** (sādíq) ص. نر.م. رېښتونی، سم، صاف.

**صاعد** (sāşíd) ص. نر.م.ج. ختونکی، پورته تلونکی، لوړېدونکی.

**صاعقه** (sāsiqá) ښځ. م. ۱) تندر، تکه؛ (وګ. رعد ۲)؛ ۲) آفت، بلا.

**صاف** (sāf) ص. نر. م. ج. ۱) روڼ، سپین، روښانه؛ ۲) نېره، پاک؛ ۳) صادق.

**صافول** (sāfawә́l) مص. مت. ۱) پاکول، روڼول؛ ۲) سپینول؛ ۳) چونډل، چڼول.

**صافي** (sāfí) ښځ. م ۱) صافه، پاکوونی؛ ۲) چڼوونی ۳) د وریجو صافولو سوری سوری فلزي آله؛ ٤) ص. نب. نېره، خالص، سوچه.

**صافېدل** (sāfedә́l) مص. ل. ۱) پاکېدل، رڼېدل، روڼېدل؛ ۲) نېره کېدل، سوچه کېدل.

**صالح** (sālíh) ص. نر. م. (ج. صالحان) ۱) د فاسد ضد؛ نېک عمله، د ښه عمل خاوند؛ ۲) ور.

**صالحه** (sālihá) ص. نب. د صالح مؤنث.

**صالون** (sālū́n) نر. م. وګ. سالون.

**صامت** (sāmít) ص. نر. م. ج. غلی، خاموش، بې غږه و ږوغه، آرام، پټ خولی.

**صانع** (sāníɂ) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) پنځوونی، خلقوونکی؛ ۲) جوړوونکی؛ ۳) جاري، صنعتګر.

**صايت** (sāyít) ص. نر. م. ج. ږغ کوونکی، فریاد کوونکی، اواز تولیدونکی.

**صبا** (sabā́) ص. وګ. سبا.

**صباحت** (sabāhát) نر. م. ښکلا، ښایست، جمال.

**صباوت** (sabāwát) نر. م. هلک توب، ورکتوب، ورکوالی، کوچني والی.

**صبر** (sabar) نر. م. ۱) زغم، حوصله، تحمل، پښخي، سکته؛ ۲) وګ. سبر.

**صبرناک** (sabarnā́k) نر. م. ج. ۱) صبرناکه، پښخیالی، د زغم و حوصلي خاوند؛ ۲) قانع.

**صبرول** (sabrawә́l) مص. مت. ۱) زغم کول حوصله کول؛ ۲) قناعت کول.

**صبرېدل** (sabredә́l) مص. ل. څنې ګرځېدل، مخ ګرځېدل، منصرفه کېدل، قانع کېدل.

**صبغه** (sibğá) ښځ. م. ۱) رنګ؛ ۲) بڼه، څېره، شکل؛ ۳) نوع؛ ٤) دين، ملت.

**صبور** (sabū́r) ص. نر. م. صبرناک، صابر، پښخیالی.

**صبي** (sabí) نر. م. (ج. صبيان) هلک، کوچنی.

**صبيان** (subyā́n) نر. م. ۱) د کوچنیانو یوه عصبي ناروغی ده؛ ۲) د صبي جمع.

**صبيه** (sabiyá) ښځ. م. لور، ښځینه اولاد.

**صحابه** (sahābá) نر. ج. د صحابي جمع؛ ۱) یاران، ملګري؛ ۲) د حضرت محمد (ص) یاران.

**صحابي** (sahābí) ص. نر. م. هغه چا چې د اسلام له پیغمبر حضرت محمد (ص) سره لیدلي وي.

**صحاف** (sahā́f) نر م. ص. ۱) دوتینار، هغه څوک چې د جلد ورقې سره یو ځای کوي او ښېرازه کوي یې؛ ۲) لره پښتونخوا کې یې ژورنالیسټ ته وایي.

**صحافت** (sahāfát) نر. م. د کتاب د توک ورقو یو ځای کولو، ښېرازه ورکولو فن.

**صحبت** (suhbát) نر. م. (ج. صحبتونه) مجلس، مرکه، خبرې اترې؛ ۲) جماع، کوروالہ.

**صحبتي** (suhbatí) ص. نب. نر. ښځ. م. مجلسي، مرکچي، ښه او خوږ مجلس کوونکی.

**صحت** (sihát) نر. م ۱) وګ. روغتیا؛ ۲) سموالی، کره والی، کره توب.

**صحرا** (sahrā́) ښځ. م. وګ. سارا.

**صحن** (sáhәn) نر. م. ۱) انګړ، غولی، میدان؛ ۲) سان، یو ډول نخي توکر دی؛ ۳) ښانک.

**صحنه** (sahná) ښځ. م. ۱) وګ. تیاتر؛ ۲) هغه ځای چې بازاري هنرمندان نڅېږي او یا کومه ننداره ښیي؛ ۳) سیل، تماشه؛ ٤) پرده، ستېج.

**صحي** (sıhí) ص. نب. نىر. ښځ. م. ج. روغتيايي، د صحت، په صحت اړوند.

**صحيح** (sahíh) ص. نىر. م. ج. ص. نب. سهي؛ ۱) سم، روغ، جوړ؛ ۲) له ارزښت، قانون و عدل سره سم.

**صحيفه** (sahifá) ښځ. م. ۱) ليک؛ ۲) رساله، کتاب، مصحف، په تېره بيا هغه کتاب چې د پاک خدای له خوا نازل شوی وي.

**صحيه** (sahıyá) ص. نب. روغتيايي، صحي د صحت، په صحت اړوند.

**صخره** (saxrá) ښځ. م. غټه او کلکه ډبره.

**صدارت** (sadārát) نىر. م. ۱) صدراعظمي، د صدراعظم منصب؛ ۲) د صدراعظم يا لومړي وزير دفتر؛ ۲) مخکې والی، مخکښتوب؛ ٤) لوړه کښاستنه.

**صداقت** (sadāqát) نر. م. ۱) رښتيا، رښتينولي، اخلاص؛ ۲) د رښتيا او د زړه دوستي.

**صدر** (sádar) نر. م. ۱) د کوم څه ابتدا؛ لوړ، جگ برخای؛ ۲) مشر، رئيس؛ ۳) سينه، ټټر.

**صدراعظم** (sadraʕzám) ص نر. م. لوی واکوال، لومړی وزير، د وزيرانو مشر، د کابينې مشر.

**صدري** (sadrí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ۱) په صدر اړوند؛ ۲) د ټټر، په سينه اړوند، لکه صدري ناروغي.

**صدف** (sadáf) نىر. م. (ج. صدفونه) سيپی، يو بحري ژوی دی چې په يوه پوښ کې (چې صدف نوميږي) اوسي.

**صدق** (sıdq) نر. م. رشتيا. رښتيا والی، سموالی د کذب ضد.

**صدقه** (sadaqá) ښځ. م. (ج. صدقې) خير، خيرات، سرجاری، واری، قرباني. (و گ. زکات).

**صدمه** (sadamá) ښځ. م ۱) وهنه، ټکونه؛ ۲) زيان ضرر؛ ۳) مصيبت.

**صديق**[1] (sadiq) نىر. م. ملگری، يار، انډيوال، مهربانه او زړه ته تېر ملگری.

**صديق**[2] (sıdíq) ص. نر. م. ج. ۱) رښتين، صادق، سپين؛ ۲) د حضرت ابوبکر (رض) لقب.

**صراحت** (sarāhát) نر. م ۱) څرگندتيا، څرگندتوب، اوڅارتيا؛ ۲) سوچه والی.

**صراحي** (surāhí) ښځ. م. (ج. صراحيانې) ګندی، تم، تـوم، يو لـوښـی دی چې تنگه اوږده غاړه لري.

**صراف** (saráf) نىر. م (ج. صرافان) ۱) د روپو بدلوونکی ۲) زر پېژندونکی.

**صرع** (sarʕ) ښځ. م. مېرگي، پېري نيول، حمله.

**صرف**[1] (sarf) نر. م. ۱) مورفولوجي، گړپوهه، د يوې ژبې د کليمو د جوړښت طريقو او د کليمو د بدلونو او حالاتو د څېړنې علم؛ ۲) د صرف علم؛ ۳) مصرف، لگونه، خرڅ؛ ۲) گټه فايده.

**صرف**[2] (sırf) ق. ۱) خالص، نىره؛ ۲) يوازې، تنها؛ ۳) فقط.

**صرف نظر** (sarfınazár) نر. م. تېرېدنه، پرېښوونه، پرېښودنه، له نظره اچونه.

**صرفه** (sarfá) ښځ. م ۱) سپما؛ ۲) درېغونه؛ ۳) گټه ٤) دروغنه، حيله؛ ۵) ډېروالی.

**صرفي** (sarfí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ۱) صرف، په صرف اړونده؛ ۲) د صرف د علم عالم

**صريح** (sarīh) ص. نىر. م. ج. ۱) اوڅار، جوت؛ ۲) په زغرده، په ړده؛ ۳) خالص، پاکيزه.

**صعب** (sáʕb) ص. نىر. م. گران، سخت، ښکالوه، مشکل.

**صعود** (susūd) نر. م. پورته تگ.

**صغارت** (sağārát) نر.م. ۱) کوچنیوالی، وړوکوالی، نابالغتوب؛ ۲) خوارېدنه.

**صغرا** (suğrā́) ص. ښځ. م. ج. صغری؛ ۱) وړه، وړکې، کوچنۍ؛ ۲) وړه ښځه.

**صغیر** (sağír) ص. نر.م (ج. صغیران) ۱) کوچنی، وړوکی، نابالغه؛ ۲) دشعر د یوه بحر نوم چې د مستفعلن فاعلات مستفعلن پر وزن دی.

**صف** (saf) نر.م. (ج. صفونه) ۱) کتار، قطار، ځیره، لیکه؛ ۲) ډله.

**صفا** (safā́) ص. ب. صفاء ۱) پاکیزه، سپېڅلی؛ ۲) رون؛ ۳) ستره؛ ٤) په سعودي عربستان کې یو ځای دی چې د مسجد الحرام خواته پروت دی.

**صفار** (safā́r) ص. نر.م. تنبار، مسکر، رویگر.

**صفاوالی** (safā́wā́lay) نر.م. ۱) پاکوالی، سپېڅلتیا؛ ۲) رونوالی؛ ۳) نره والی.

**صفايي** (safāyí) ښځ. م. ۱) پاکي، پاکیزه گي؛ ۲) رونوالی؛ ۳) ستره گي؛ ٤) خوښي.

**صف بندي** (safbandí) ښځ. م. گروپ بندي، صف جوړونه، صف تړنه.

**صفت** (sıfát) نر.م (ج. صفتونه، صفات) ۱) ستاینه مدح؛ ۲) دحال بیان، حالت؛ ۳) گر. ستاینوم، د کلام یو توکی دی چې د یوه نوم حال وځرنگوالی بیانوي لکه: ښایسته (گل).

**صف تړنه** (saftaṛána) ښځ. م. و گ. صف بندي.

**صفتي** (sıfatí) ص: نب. نر. ښځ. م. ۱) دصفت، په صفت اړوند؛ ۲) دستاینې وړ، دمدحې وړ.

**صفحه** (safhá) ښځ. م. (ج. صفحې) ۱) مخ، سطح؛ ۲) د پاڼې یوه خوا.

**صفحه بندي** (safhábandí) ښځ. م ۱) صفحې تړنه، مخونه برابرونه؛ ۲) صفحې شمېرنه.

**صفر** [۱] (sífər) نر.م. (ج. صفرونه) ۱) تکی، نقطه؛ ۲) (ری.) د «۰» یا «0» سمبول.

**صفر** [۲] (safár) نر.م. ۱) و گ. صفره؛ ۲) دیرقان ناروغي؛ ۳) لوږه؛ ٤) نفس ٥) عقل.

**صفرا** (safrā́) جن. ۱) ژړ، ژېړ، د انسان په نس کې ژړه مایع ده چې ینه یې افرازوي خوند یې تریخ او معدني مالگې لري؛ ۲) زېړی، یرقان.

**صفرايي** (safrāyí) ص. نب. نر. ښځ. م. صفراوي؛ ۱) د صفرا، صفرا ته منسوب؛ ۲) زېړاوی، د چا چې پر مزاج صفرا غالبه وي.

**صفه** (sufá) ښځ.م. (ج. صفې) ډبه، چوتره، وستل.

**صکوک** (sūkū́k) نر. ج. ۱) لیکنې؛ ۲) قباله؛ ۳) چکونه؛ ٤) کیندنه؛ ٥) تکونه.

**صلاح** (salā́h) ښځ. م. ۱) ښه کېدنه، نېک عمله کېدنه؛ ۲) خیر و نېکي؛ د «ص» په زبر د پخلا کېدو او جوړجاړي مانا لري.

**صلاح کار** (salāhkā́r) ص. نر.م. سلاکار، مشاور مصلحتي.

**صلاحيت** (salahyát) نر.م. (ج. صلاحیتونه) ۱) واک، اختیار؛ ۲) وړتیا، لیاقت، وړوالی.

**صلب** (salb) نر.م ۱) په سولي کول، په دار وهل، په دار ځړونه؛ ۲) اخیستل، لاندې کول، غصبول.

**صلبيه** (salbıyá) ښځ. م. په سترگه کې سپینه او مکدره پرده ده او شاته یې یو سوری دی.

**صلح** (sulhá) ښځ. م. و گ. سوله[۱].

**صلح نامه** (sulhnāmá) ښځ. م. سوله نامه، د سولې موافقت لیک، روغه لیک.

**صله** (sılá) ښځ. م. (ج. صلې، صلات) ۱) ورکړه، بخشش؛ ۲) خپلوي، دوستي؛ ۳) جایزه.

**صليب** (salíb) نر.م. ۱) چلیپا (×)؛ ۲) د عیسوي دین سمبول؛ ۳) د مسیحي عقیدې سره سم هغه

دار چې عیسی (ع) پرې وځړول شو.

**صماخ** (sımáx) نر.م. د غوږ شپېلۍ، د غوږ نل، د غوږ سوری.

**صمد** (samád) ص. نر.م ۱) د لوی خدای یو صفت دی؛ ۲) مشر، سردار؛ ۳) بې نیازه.

**صمصام** (samsám) نر.م. تېره توره، هغه توره چې په بېنې لاس سره چلېږي.

**صمغ** (samğ) جن. کنډ، زرکنډ، کنډوری.

**صمیمانه** (samimāna) ق. په صمیمیت سره، له خلوصه، له زړه.

**صمیمي** (samimí) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. ۱) مینه ناک؛ ۲) د زړه له کومي ملګرتیا.

**صمیمیت** (samimyát) نر.م. اخلاص، مینه، ګرانښت، علاقه، د زړه مینه.

**صناعت** (sanāṣát) نر.م (ج. صنایع) ۱) فن، هنر؛ ۲) کسب، صنعت، حرفه، پېشه.

**صناعتي** (sanāṣatí) نر. ښځ. م.ج. ص. نب. د صناعت، په صناعت اړوند، صنعتي.

**صنج** (sanj) نر.م. ۱) د چنګ معرف؛ ۲) و ګ. سمبل.

**صندل** (sandál) نر.م. و ګ. سندل.

**صندلي** (sandalí) ښځ.م. و ګ. سندلی.

**صندوف** (sundúf) نر.م. یو ډول روسی تو کر دی.

**صندوق** (sandúq) نر.م. سوندخ، سندوخ؛ یوه لرګینه یا فلزي محفظه ده.

**صندوقچه** (sandūqčá) ښځ.م. صندقچه، هړپی، سندوخچه، وړوکی صندوق.

**صنع** (sānṣa) ښځ.م. پیداکونه، جوړونه، هست کول

**صنعت** (sanṣát) نر.م. (ج. صنعتونه) ۱) کار، چاره ۲) کسب، پېشه؛ ۳) هنر؛ ٤) په ماشینو سره د اجناسو، میخانیکي آلاتو او ... جوړول.

**صنعت کار** (sanṣatkār) نر.م. ۱) کاریګر، کارګر؛ ۲) صنعتګر، چاري؛ ۳) هنرمند؛ ٤) فن کار.

**صنعتي** (sanṣatí) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. صناعتي، د صنعت، په صنعت مربوط.

**صنف** (sınf) نر.م (ج. صنفونه) ۱) ټولګی، د درس ویلو کوټه؛ ۲) ډله، ډلګی؛ ۳) ډول، نوع.

**صنفي** (sınfí) ص. نب. ښځ. نر.م. ج. ۱) د صنف؛ ۲) د ډلې؛ ۳) د یوه واحد کار، کسب او... په اجرا کوونکو مربوط.

**صنم** (sanám) نر.م ۱) بت، خټ؛ ۲) مج. معشوقه.

**صنوبر** (sanobár) نر.م.ج. جنغوزي، غوزنځي، غونځي؛ یو ډول لوړه او غټه ونه ده.

**صواب** (sawā́b) نر.م.ج. (ج. صوابونه) د خطا مقابل، ۱) سم، رښتیا؛ ۲) وړ، لایق.

**صوبه** (sūbá) ښځ.م. (ج. صوبې) ایالت، ولایت، ډګره، ولکه، لته، پراونس.

**صوبه دار** (sūbadā́r) ص. نر.م. صوبېدار؛ له بلوک مشر نه دجګې رتبې لرونکی؛ ۲) د صوبې حاکم.

**صوت** (sáwt) نر.م. (ج. صوتونه) ږغ، غږ، اواز؛ و ګ. ږغ.

**صوتي** (sawtí) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. د صوت، په صوت اړوند، په ږغ مربوط، ږغ کوونکی؛ صوتي ابدال؛ صوتي اوښتنه؛ صوتي واحد (ژ.ب): صوتي عنصر، فونیم.

**صور** (sūr) نر.م. ۱) بغۍ، ښکر، شپېلۍ، هغه آله چې په پوکولو سره اواز کوي؛ ۲) د اسرافیل صور.

**صورت** (sūrát) نر.م. (ج. صورتونه) ۱) څېره، قواره؛ ۲) بدن؛ ۳) اننګي، رخسار؛ ٤) توګه.

**صوري** (sūrí) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. ظاهري، سطحي.

**صوف** (súf) نر.م.ج. ۱) د پسه وړی؛ ۲) یو ډول وړین توکر.

**صوفي** (sofí) ص.نر.م. (ج. صوفیان) ۱) د تصوف د طریقت پیرو؛ ۲) دوړینو جامو اغوستونکی.

**صوفیانه** (sofyāná) ص.نب. نر. ښځ. م.ج. د صوفي، په صوفي اړوند.

**صوفي توب** (sofitób) نر.م. تصوف، د تصوف پر لاري تګ، د تصوف د طریقې پیروي.

**صوفیه** (sofyá) نر.ج. صوفیان، د صوفیانو فرقه.

**صومعه** (sawmasá) ښځ.م. ۱) د غره پر سر او یا په کوم ځنګ ځای کې د راهب عبادتځی؛ ۲) دیره، خانقاه.

**صهباء** (sahbā́) جن. ۱) می، شراب؛ ۲) ص.نب. سور او سپین.

**صهیون** (sıhyū́n) نر.م. ۱) یهود؛ ۲) هسک، اسمان؛ ۳) جنت؛ ٤) بیت المقدس؛ ۵) د خدای جل جلاله تیو کراسي.

**صیاد** (sayā́d) ص.نر.م. ښکلري، ښکارغن، ښکارزن، ونی.

**صیانت** (sıyānát) نر.م. ساتنه، حفاظت، خوندي کونګ.

**صیب** (sayb) نر.م. د صاحب منحرف یا اوښتی شکل.

**صید** (sayd) نر.م ۱) وڼ، وڼا، د ښکار کولو عمل؛ ۲) ښکار: هغه څه چې ښکار کېږي.

**صیغه** (sīğá) ښځ.م. ۱) ډول، قسم، څېر؛ ۲) بڼه، شکل؛ ۳) هر څه چې په قالب کې اچول شوي وي؛ ٤) جهت، د فعل د حدوث څرنګوالی؛ ۵) متعه.

**صیقل** (sayqál) نر.م. روڼې: ۱) هغه څه چې فلزاتو نه زنګ او داغ لېري کوي؛ ۲) ځلا، صفايي، روڼوالی.

**صیقل کول** (sayqálkawál) مص.مت. صیقلول، پاکول، روڼول، ځلا ورکول.

# ض

ض (dwāt, zād) نر. م. د پښتو الفبې شپږ ویشتم توری. ابجدي ارزښت يې ۸۰۰ دی.

ضابط (zābít) ص. نر. م. (ضابطان) ۱) ساتندوی، زمیری؛ ۲) پیاوړی؛ ۳) حاکم، ٤) قاند؛ ٥) نر. م. منصبدار، نظامي صاحب منصب.

ضابطه (zābitá) ښځ. م. کړنلاره، قاعده، دستور، مقرره.

ضاد (dwād, zād) نر. م. د «ض» د توري تلفظ.

ضامن (zāmín) نر. م. (ج. ضامنان) ۱) ذمه وار، ضمانت کوونکی، کفیل؛ ۲) غرامت.

ضامنګړی (zāmíngaṛay) ص. نر. م. (پ. ک.) هغه کورنۍ چې د نښتې د تېرې تر ایښودلو وروسته د دوو دښمنو خواوو تر منځ د هغوی ضمانت کوي

ضامنول (zāmınawál) مص. مت. ذمه وار کول، ملتزم کول.

ضامني (zāmıní) ښځ. م. ذمه واري، ضمانت، ضمانت کونګ، ذمه وهنه، سینه ټپونه.

ضامنېدل (zāmınedál) مص. ل. ضامن کېدل، ضمانت کول، ذمه وار کېدل.

ضایع (zāyí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ۱) تباه، تلف، زیان شوی؛ ۲) بې بنې، بې ګټې، مهمل.

ضایعه (zāyısá) ښځ. م. ۱) ضایع، تباه یا تلف شوی؛ ۲) زیان، تاوان، نقصان.

ضبط (zabt) نر. م. ۱) خوندي حفظ؛ ۲) انضباط، ډسپلین؛ ۳) قبضه، تصرف، ٤) زده کونګ؛ ٥) ثبت، د اواز ثبتونه؛ ٦) تینګونه.

ضبطول (zabtawál) مص. مت. ضبط کول؛ ۱) ساتل، حفظول؛ ۲) تر لاسه کول، تصرفول؛ ۳) زده کول؛ ٤) اواز ثبتول؛ ٦) تینګول.

ضبطي (zabtí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. د ضبط، په ضبط اړوند، ضبط ته منسوب.

**ضبطېدل** (zabtedál) مص. ل. ۱) ضبط کېدل؛ ۱) حفظېدل؛ ۲) قبضه کېدل، تصرف کېدل؛ ۳) زده کېدل؛ ٤) ثبتېدل؛ ٥) ټينګېدل.

**ضخامت** (zaxāmát) نر.م. ۱) پنډوالی، پلنوالی، غټوالی؛ ۲) چاغښت.

**ضخيم** (zaxím) ص. نر.م. ج. پنډ، غټ، چاغ.

**ضد** (zad) ص. نر.م.ج. ۱) مخالف؛ ۲) دښمن؛ ۳) خنډ، مخه نيوونکی؛ ٤) نر.م. اړی، جبل، ځبل، سرتمبګي، هټ، هوډه.

**ضدي** (zadí) ص. نب. نر. ښځ. ج. ضد کوونکی، سرتمبه، سرتمبه، ځبلناکه، هوډي.

**ضديت** (zadyát) نر.م. ۱) ضدوالی، هوډه، هټه؛ ۲) مخالفت.

**ضدين** (zadáyn) نر.ج. دوه ضده، د يو بل مخالف.

**ضرابخانه** (zarābxāná) ښځ. م. د سکو جوړولو ځای، د سکې د ضرب ځای، مضرب.

**ضرب** (zárb) نر.م. ۱) وهل، ډبول؛ ۲) د حساب يوه عمليه ده چې نخښه يې :× يا (.) ده.

**ضرب المثل** (zarbulmasál) نر.م. (ج. ضرب المثلونه) ۱) مثل وهنه، متل راوړنه؛ ۲) متل.

**ضربان** (zarbā́n) نر.م. ۱) وهنه؛ ۲) د زړه رپا، د زړه توپ.

**ضربول** (zarbawál) مص. مت. په حساب کې د ضرب د عمليې اجرا کول.

**ضربه** (zarbá) ښځ. م. ضربت؛ ۱) يو ځل وهنه؛ ۲) ماته، شکست؛ ۳) زيان، ضرر، نقصان؛ ٤) تکان.

**ضربي** (zarbí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. دوهلو، د ټکولو، دزبولو.

**ضرر** (zarár) نر.م. (ج. ضررونه) زيان، تاوان، نقصان.

**ضرري** (zararí) ص.نب.نر.ښځ. م. ج. ضررناک، مضر، زيان رسوونکی.

**ضرور** (zarū́r) ق. ۱) خامخا، ارو مرو؛ ۲) لازم، واجب؛ ۳) اړه، احتياج؛ ٤) مجبوريت.

**ضرورت** (zarūrát) نر.م. اړتيا، اړه درلودنه، احتياج

**ضرورتاً** (zarū́ratán) ق. د ضرورت له مخې، د احتياج له مخې، د اړتيا له مخې.

**ضروري** (zarūrí) ص.نب.نر.ښځ. م. د ضرورت، په ضرورت مربوط، ضرورت پورې تړلی.

**ضروريات** (zarūryā́t) نر.م. ج. اړتياوې، ضرورتونه، د ضرورت جمع.

**ضعف**[1] (zōsf) نر.م. ۱) کمزوري، سستي؛ ۲) بې سدي، بې هوښي.

**ضعف**[2] (zisf) ص.نر.م. ج. دوه برابره، دوه چنده.

**ضعيف** (zasíf) ص. نر.م. ج. کمزوری، ناتوانه، بې سيکه، بې کفايته.

**ضلال** (zalā́l) نر.م. ۱) لاره ورک کول؛ ۲) دلارې ورک کول.

**ضلالت** (zalālát) نر.م. بې لارې، لارورکي، بې لارتوب.

**ضلع** (zílʾ) ښځ. م. ضلعه؛ ۱) د څنګ هډوکی، پوښتی؛ ۲) ډډه، څنګ؛ ۳) علاقه، سيمه.

**ضم** (zam) ص.نر.م.ج ۱) مل، ملګری؛ ۲) ضميمه؛ ۳) ورپورې، ورسره؛ ٤) نر.م. ضمه، پېښ.

**ضمانت** (zamānát) نر.م. ۱) ذمه واري، کفالت، التزام؛ ۲) په دايمي ناروغۍ اخته کېدنه.

**ضمن** (zíman) ق. ترڅ؛ منځ، د يو شي دننه، داخل.

**ضمناً** (zímnán) ق. په ترڅ کې، په منځ کې، په څنګ کې، ورسره.

**ضمني** (zimní) ص.نب. نر.ښځ. م. ۱) په ضمن پورې اړوند؛ ۲) په څنګ کې؛ ۳) فرعي.

**ضمه** (zamá) ښځ.م. پېښ، د کليمې له حرکاتو او اعراضو څخه دی.

**ضمير** (zamír) نر.م(ج. ضميرونه، ضماير) ۱) گر. نومځری pronoun ؛ يوه کليمه ده چې د تکرار د مخنيوي او د کلام د لنډولو لپاره د نوم پرځای راځي؛ ۲) وجدان، اخلاقي شعور؛ ۳) پټ راز، اند؛ ٤) د انسان باطن.

**ضميمه** (zamimá) ص.نب. ښځ.م. ۱) وگ.ضم؛ ۲) گر. تاړی، Affix ، (وند) ؛ هغو مقيدو کليمو ته وايي چې د نورو کليمو په سر، پای او منځ کې نښلي او په ترتيب سره د مختاړي وروستاړي او منځتاړي په نومونو يادېږي- پښتو مختاړي او وروستاړي لري ،خو منځتاړي نه لري.

**ضياء** (zıyā́) نر. ښځ. م. رڼا ،روښنايي، نور.

**ضيايي** (zıyāyí) ص. نب. نـر . ښـځ. م. ج. د روښنايي، په‌رڼا اړوند.

**ضيق النفس** (zàyqūnáfs) نر.م.و گ. سابندي.

# ط

**ط** (twe, twā) ښځ. م. د پښتو الفبې اووه ويشتم توری دی. ابجدي ارزښت يې (٩) دی.

**طاس** (tās) نر. م. تاس: ١) جام، مسي کاسه؛ ٢) لوی تشت؛ ٤) د هډوکو يوه مکعبه مهره ده چې پر شپږو خواو يې ١-٦ ټکي دي.

**طاسبرګ** (tasbárg) نر. م. ګلبرګ، د ګل يوه برخه ده.

**طاعت** (tāʕát) نر. م. ١) غاړه اېښودنه، قبلونه، فرمان وړنه؛ ٢) عبادت کونه، عبادت.

**طاعون** (tāʕún) نر. م. تاوون، مرګو، وبا، يوه خطرناکه ساري ناروغي ده.

**طاغوت** (taǧút) نر. م. ١) سرکښ؛ ٢) ظلم، ستم، تجاوز؛ ٣) بت، له لوی خدای پرته بل هر معبود.

**طاق** (tāq) ص. نر. م. ١) د جفت مقابل؛ ٢) وتلی، نامتو بې جوړې؛ ٣) نر. م. کوښيغ، قوسي ډوله چت؛ ٤) تاخ، تاخچه.

**طاقت** (tāqát) نر. م. زور، توان، سيک.

**طاقچه** (tāqčá) ښځ. م. (ج. طاقچې) تاخچه، شيلګی، غراسپی، تاقچه.

**طالب** (tālíb) ص. نر. م. ج. (ج. طالبان) ١) طلب کوونکی، غوښتونکی؛ ٢) زده کوونکی، شاګرد ٣) د ديني علومو زده کوونکی.

**طالبي** (tālıbí) ښځ. م. ١) غوښتنه، لټونه، طلبونه؛ ٢) د ديني علومو د زده کوونکي مسلک.

**طالع** (tālíʕ) ښځ. م. ١) بخت، قسمت، نصيب؛ ٢) راختونی، راختونکی.

**طالعمن** (tālısmán) ص. نر. م. بختور، سخور.

**طامع** (tāmíʕ) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ١) سولن. هيلندوکی، تمه کوونکی؛ ٢) امېدوار.

**طاوس** (tāwás) نر. م. وګ. تاووس.

**طاهر** (tāhír) ص. نر. م. ج. ١) پاک، سپېڅلی، پېجاو، پاکيزه؛ ٢) د الله تعالی يو نوم.

**طایفه** (tāyifá) ښځ. م. ۱) توکم، ټبر؛ ۲) ډله، یوه ډله خلک.

**طب** (tib) نر. م ۱) طبابت، ډاکټري؛ هغه پوهنه او فن چې هدف یې د ناروغی پېژندنه او درملنه وي؛ ۲) علاج.

**طباعت** (tabāʂát) نر. م. چاپ، طبع کونګ، د مطبعې چاره.

**طباعتي** (tabāʂatí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. د طباعت، د چاپ، په طبع اړوند.

**طباق** (tibā́q) نر. م. ۱) برابرونه، سمونه، تطابق؛ ۲) (بد.) متضاد، مطابقت، تقابل، تضایف.

**طبع** (tábʂ) ښځ. م ۱) طبیعت، مزاج، خوی، عادت؛ ۲) چاپ، چاپونه؛ ۲) نقش.

**طبعاً** (tábʂán) ق. ۱) طبیعتاً، په طبیعي توګه؛ ۲) عادتاً: د عادت له مخې.

**طبع کول** (tabʂákawál) مص مت. ټاپول، چاپول، چاپ کول.

**طبع کېدل** (tabʂakedál) مص. ل. چاپېدل، چاپ کېدل، ټاپېدل.

**طبق**(۱) (tabáq) نر. م. ۱) تبک، تبخ، دغوا او غویي یو ډول ناروغي ده؛ ۲) د لوښي سرپوښ؛ ۳) ښانک؛ ٤) د سرو زرو پاڼه؛ ٥) ببخ؛ ٦) ډله.

**طبق**(۲) (tibq) اد. (اض.) مطابق، ... سره سم.

**طبقات الارضي** (tabaqātularzí) ص. نب. د جیالوجیکي سروې، پرځمکه پېژندنه اړوند.

**طبقاتي** (tabaqātí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. د طبقې، په طبقې اړوند.

**طبقه** (tabaqá) ښځ. م. (ج. طبقې) ۱) پوړ، منزل؛ ۲) د خلکو سترې ډلې.

**طبل** (tábal) نر. م. (ج. طبلونه) ډول، نغاره، ډانګه.

**طبله** (tablá) ښځ. م. ۱) وګ. دوکړه ۱)؛ تبله.

**طبلیي** (tablayí) ص. نب. نر. ښځ. م. دوکړه مار، ډوبری، مار، طبله چي، تبله چي.

**طبیب** (tabíb) نر. م. (ج. طبیبان) ۱) حکیم، ۲) وګ. ډاکټر ۱).

**طبیعت** (tabiʂát) نر. م. ۱) پنځون، خورزون، اصل، ختهه، ذات؛ ۲) دیوه جنس جوهر؛ ۳) د یوه سړي خلق، خوی، خصلت.

**طبیعتاً** (tabiʂatán) ق. د طبیعت له مخې، ذاتاً.

**طبیعي** (tabiʂí) ص. نب. ۱) د طبیعت، په طبیعت اړوند؛ ۲) نر. ښځ. م. ج. اصلي، ذاتي، له ختې؛ ۳) ساینسي، سیانسي.

**طبیعیون** (tabiʂiyū́n) نر. ج. ۱) فزیوکراتان؛ ۲) هغه کسان چې طبیعت مطالعه کوي.

**طبیله** (tabelá) ښځ. م. (ج. طبیلې) طویله، تبیله، تویله، د آسونو او خرو د ساتنې کوټه.

**طحال** (tihā́l) نر. م. وګ. توری ۲).

**طراز** (tirā́z) نر. م ۱) دجامې نخش و نګار (کښیده) ۲) لاره، طریقه، چلند؛ ۳) کتار، صف.

**طراوت** (tarāwát) نر. م. ښېرازي، تازه ګي، ښېرازتوب، اسپویلتوب.

**طرب** (taráb) نرم. ښادي، خوښي، خوشالي.

**طرح** (tárhá) ښځ. م. طرحه؛ ۱) نقشه، پروګرام، د کار لاربنود ۲) اساس؛ ۳) وړاندیز؛ ٤) اطراح، غورځونه؛ ٥) خاکه، مقدماتي چاره.

**طرد** (tard) ص. نر. م. ج. ۱) لېرې کړی، شړلی، رټلی، ګوښه شوی؛ ۲) تبعید.

**طرز** (tarz) نر. م. (ج. طرزونه) ۱) طریقه، لاره، روش؛ ۲) څېره، شکل، صورت.

**طرف** (taráf) نر. م. ۱) خوا، لوري، پلو؛ ۲) د یوه شي څنډه او پای.

طرفدار (tarafdā́r) ص. نر.م. سیلگر، پرخوا، سپلندوی، پلوي، په خوا.

طرفداري (tarafdārí) ښځ. م. سپله، پلوي، پرخوا کېدنه، ننگه کول، ننگه.

طرفین (tarafáyn) نر.ج. ۱) دوه طرفه، دوې خواوې، دواړه لوري؛ ۲) فق. مدعي او مدعي علیه.

طرم (tr(á,ú)m) نر.م. وگ. ترم.

طره (turá) ښځ. م. ۱) شمله، جوغه؛ ۲) د اس د ځندي ویښتان.

طریق (taríq) نر.م. ۱) لاره، لیاره؛ ۲) اصول، مقررات؛ ۳) تکنیک.

طریقت (tariqát) نر.م ۱) لاره، لیاره؛ ۲) چلند؛ ۳) تص. د سلوک دویم مزل دی.

طریقه (tariqá) ښځ. م. (ج. طریقې) ۱) طریقت؛ ۲) لار، لاره، لیاره؛ ۳) دود، دستور.

طشت (tašt) نر.م. (ج. طشتونه) ۱) وگ. تشت؛ ۲) د موسیقۍ یو ډول آله ده.

طعام (tasā́m) نر.م. (ج. طعامونه) اتام (خواړه)؛ د خوراک شیان.

طعم (tásam) نر.م. خوند، مزه، ذایقه.

طعمه (tusmá) ښځ. م. ۱) تومه، خوراک، روزي؛ ۲) مج. هغه غوښه چې باز ته یې ورکوي.

طعن (tásan) نر.م. ۱) ځانگړ وهل، نیزه وهنه؛ ۲) نېښ وهنه؛ ۳) طعنه، پېغور.

طعنه (tasná) ښځ. م. انک، تانه، پېغور.

طغرا (tuğrā́) نر.م. طغراء، طغری: ۱) هغه لقبونه چې د شاهي فرمانو په سر کې لیکل کېدل؛ ۲) یو ډول منحني او سره پېچلې لیک دی.

طغیان (tuğyā́n) نر.م. ۱) د سیند یا بحر له غاړو نه د اوبو اوچتېدل؛ ۲) سرغړونه، راپا ریدنه؛ ۳) له خپله حده تېرېدنه.

طفل (tífal) نر.م. (ج. اطفال) ماشوم، کوچنی.

طفلي (tiflí) ښځ. م. د کوچنیتابه، د ماشومتابه.

طفیلي (tufaylí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) کسبه، پاڅکی، نابللی؛ ۲) مفتخور، د بل په اوږو بار.

طلا (tilā́) ښځ. م. وگ. سره زر.

طلاب (tulā́b) نر.ج. ۱) طالبان، د طالب جمع؛ ۲) زده کوونکي، شاگردان.

طلاق (talā́q) نر.م. د مېړه او ماندینې سره بېلېدنه، ښځه پرېښودنه، د نکاح له قیده خلاصون.

طلاقول (talāqawā́l) مص. مت. طلاق ورکول، ښځه یا مېړه پرېښوول، نکاح فسخ کول.

طلاقي (talāqí) ص. نر.م. ص. نب. مطلقه، چې ښځه یې طلاقه کړې وي، طلاق شوی.

طلاقی (talāqáy) ښځ. م.ج. مُطلقه؛ طلاقه شوې ښځه، پرېښې.

طلاکاري (tlākārí) ښځ. م. هغه څه چې طلا په کې لگول شوي وي؛ د طلاکارولو عمل.

طلایي (tılāyí) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. ۱) په طلا اړوند؛ ۲) نر.م. یو ډول ځلېدونکی ژېړ رنگ.

طلب (taláb) نر.م. ۱) غوښتنه، رابلنه؛ ۲) پور.

طلسم (tlísam) نر.م. ۱) د کاغذ یا فلز یوه ټوټه چې جادوگران پر هغه کرښې یا جدولونه کاږي؛ ۲) مج. دروهنه؛ ۳) د امېل د منځ غټه دانه.

طلسمي (tılısmí) ص. نب. ۱) د طلسم، په طلسم اړوند؛ ۲) طلسم کوونکی؛ ۳) چمباز.

طلوع (tulū́s) ښځ. م. ۱) راختنه، ځرک وهنه، لمر ځرک؛ ۲) ظهور، ځرگندېدنه.

طلوع افغان (tulūsıfğā́n) نر.م. ۱) یوه جریده وه چې په ۱۲۰۰ ش. کال په کندهار کې خپره شوه.

طماع (tamā́s) ص. نب. ډېر تمه کوونکی، زیات طمعه کوونکی، سولنده، حریص، اروادوی.

**طماغه** (tomāγá) ښځ. م. تماغه؛ د باز يا باښې خولۍ چې خولګۍ هم ورته وايي.

**طمطراق** (tumturā́q) نر.م. ۱) پرتم،شان و شوکت ۲) ظاهري خبرې؛ ۳) د باب، لاپې، باتې.

**طمَع** (tā́ma) ښځ.م. طمعه، تمه، هیله، امید.

**طناب** (tanā́b) نر.م. ۱) تناو، پړی، رسۍ، مزی؛ ۲) هغه ځمکه چې په کال کې یو ځل حاصل کوي.

**طنز** (tanz) نـر.م. (ج. طنـزونه) ۱) کـنایه، رمـز، ۲) پېشاړه، ريشخند، تمسخر؛ ۳) رټنه.

**طنين** (tanín) نـر.م. ۱) زانګه، انګې؛ ۲) د زنګ اواز؛ ۳) بونګهار، بنهار (د مچ و غوماشي)؛ ٤) (فز.) د صوت فرعي نوسانونه.

**طواف** (tawā́f) نر.م. (ج. طوافونه) ۱) له یوه شي چاپېره ګرځېدنه؛ ۲) د حج په مـراسمو کې لـه کعبې شريفې ځخه چاپېره ګرځېدنه؛ ۳) فا.نر. م. تاوېدونکی.

**طوايف** (tawāyíf) نر.ج. ۱) د طايفه جمع؛ ۲) نر.م. په لره پښتونخواکې په دغو ماناګانو کارېږي: ۱ -سندرغاړې؛ ۲ -رقاصه؛ ۳ - بدکاره ښځه.

**طور** (tā́w(a)r) نـر.م. ۱) ډول، راز؛ ۲) طرز، چلند، طريقه؛ ۳) تولګی، نوع؛ ٤) حد، اندازه.

**طوطي** (totí) نر.م. (ج. طوطیان) توتي، طوطا، د کوترې په اندازه يو ډول شين مرغه دی.

**طوفان** (tofā́n) نـر.م. (ج. طـوفانونه) تـوپان؛ ۱) سخت سېلاو چې نابېره ډېرې ځمکې ونيسي ۲) مج. دسترې چارې ترسره کوونکی.

**طوفاني** (t(u,o)fāní) ص. نب. ۱) د طوفان، په توپان اړوند؛ ۲) ص. نر. ښځ. م. مج. د سترې يا خارق العاده چارې ترسره کوونکی.

**طوق** (tawq) نـر.م. (ج. طـوقونه) ۱) غـاړه کۍ، غاړه ګۍ؛ د غاړې امېل يا هار؛ ۲) حلقه.

**طول** (tūl) نر.م. (ج. طولونه) ۱) اوږدډه، اوږدوالی، د عرض مقابل؛ ۲) يو ډول نخې توکر دی.

**طومار** (tūmā́r) نـر.م. (ج. طـومارونه) تومـار؛ ۱) اوږد لـيک؛ ۲) نيـچه شـوی ليکلی کـاغذ؛ ۳) تعـويذ؛ ٤) طومار ليک، له شپږو ليکـونو ځخه هر هغه ليک چې ښه جلي ليکل شوی وي.

**طوي** (twé) ښځ.م. د (ط) د توري تلفظ و اواز.

**طويل** (tawíl) ص. نر.م. ۱) اوږد؛ ۲) لوړ، جګ.

**طويله** (tawelá) ښځ.م (ج. طوېلې) و ګ. طبېله.

**طهارت** (tahārát) نـر.م. ۱) پاکـېدنه، پاکتيا، پاکي؛ ۲) له حيـض ځخه د ښځې پاکـوالی؛ ۳) اودس، غسل، تيمم.

**طی** (tay) نر.م. ۱) لاره وهنه، مزل کول؛ ۲) نغښتنه، راتاوېدنه.

**طياره** (tayārá) ښځ.م (ج. طيارې) الوتکه، هوايي جهاز.

**طيب**[1] (tib) نر.م.ج. ۱) ښه بوی اوورېم؛ ۲) حلال، روا؛ ۳) علاقه، ميل، د طبعې خوښې.

**طيب**[2] (tayíb) ص. نـر.م.ج. ۱) پاک، پاکـيزه؛ ۲) روا، حلال؛ ۳) ښه، دخبيث ضد.

**طيف** (tayf) نر.م. ۱) خيال وهل؛ ۲) پر يوه شي شا و خوا راګـرځېدل؛ ۳) خنبـم؛ ٤) الـهوالتيـا؛ ۵) چورت؛ ٦) (فز.) د اوو رنګو جونګ.

**طينت** (tinát) نر.م. ۱) خوی، عادت، خصلت، کره وړه؛ ۲) اصل، خلقت، ختهه، خورزون.

**طيلسان** (taylasā́n) نـر.م.ج. يو ډول چپنه ده چې خطيب يې د نورو کاليو له پاسه په اوږه اچوي.

# ظ

ظ (zw(e,ā), zā) ښځ. م. د پښتو الفبې اته ويشتم توری دی. ابجدي ارزښت يې (۹۰۰) دی.

ظالم (zālím) ص. نـر. م. (ج. ظالمان) ظلم کوونکی، ستم کوونکی، بېرحمه.

ظالمانه (zālımāná) ق. ۱) په ظلم سره، د بېرحمۍ له مخې؛ ۲) ص. نر. م. ج. د ظلم، د ستم، په ظلم اړوند، د حق تلفۍ.

ظاهر (zahír) ص. نر. م. ج. اوڅار، ښکاره، څرګند، د باطن ضد.

ظاهراً (zāhírán) ق. په ظاهره، په داګه، په څرګنده.

ظاهربين (zāhırbīn) ص. نر. م. ج. ۱) څوک چې د يوه شي څرګندې خوا ته پام کوي نه باطن ته؛ ۲) د چاکره وره چې مخامخ ښه او پسې شا مطلوب نه وي.

ظاهرداري (zāhırdārí) ښځ. م. د ظاهربين انسان عمل، د خولې ملګرتيا، تظاهر.

ظاهروالی (zāhırwā́lay) نـر. م. اوڅارتيا، ښکاره والی، جوت والی.

ظاهرول (zāhırawál) مص. مت. ښکاره کـول، جوتول، څرګندول.

ظاهره (zāhıra) ق. ۱) په ښکاره، ظاهراً، په څرګنده؛ ۲) و ګ. ظاهر.

ظاهري (zāhırí) ص. نب. نـر. ښځ. م. ج. ۱) په ظاهر اړوند؛ ۲) ق. ظاهراً.

ظاهرېدل (zāhıredál) مص. ل. څرګندېدل، جوتېدل، ښکاره کېدل، معلومېدل.

ظرافت (zarāfát) نـر. م. ۱) ښکلا، ظريف والی، ښايست؛ ۲) ځيرکتيا، ځيرکي؛ ۳) ښه طبعه لرنه، خوش طبعي؛ ٤) مهارت.

ظرف (zarf) نر. م. (ج. ظرفونه) ۱) لوښی؛ ۲) هغه څه چې په هغه کې يوه شي ته ځای ورکړی شي.

**ظرفي** (zarfí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. د ظرف، په ظرف اړوند.

**ظرفيت** (zarfíyāt) نر.م. ۱) ځايېدنه، ځای کېدنه، ګنجايش: ۲) اهليت، وړتيا، استعداد.

**ظريف** (zaríf) ص. نر.م. ج. ۱) د ښې طبعې څښتن، غوريالی: ۲) ځيرک: ۳) ښايسته.

**ظريفه** (zarifá) ص. نب. ۱) و.ګ. ظريف: ۲) ښځ. م. ټوکه.

**ظفر** (zafár) نر.م. سوبه، بری، فتح، بريالیتوب.

**ظل** (zil) نر.م. ۱) سيوری، سوری: ۲) د شپې تياره: ۳) پناه: ٤) نعمت: ٥) هوساينه.

**ظلم** (zūlam) نر.م (ج. ظلمونه) شپيانه، تېری، ستم، زورزياتی.

**ظلماً** (zūlmán) ق. په ظلم سره، په زورزياتي، جبراً، قهراً.

**ظلمات** (zulumất) نر. ج. ۱) د ظلمت جمع: ۲) و.ګ. ظلمت.

**ظلماني** (zulmāní) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. تياره، تاريکه، د تپې تياري، د تورتم.

**ظلمت** (zulmát) نر.م. تياره، تاريکه، تپه تياره، تورتم، توره تاريکه.

**ظن** (zan) نر.م. (ج. ظنونه) ۱) ګومان، ګمان، شک، شبهه: ۲) تورن کول.

**ظني** (zaní) ص. نب. ۱) ګماني، ګوماني، شکي: ۲) د ظن.

**ظنين** (zanín) ص. نر.م. ج. تورن، تومتي، متهم، ترتورلاندې.

**ظوې** (swé) ښځ.م. ظوا، ظا، د (ظ) د توري تلفظ يا اواز.

**ظهر**[1] (zūhər) نر.م. د لمرد زوال وخت، د ورځې نيمايي، غرمه.

**ظهر**[2] (záhar) نر.م. شا، څټ، د مخ ضد، د بطن ضد.

**ظهور** (zuhűr) نر.م. ظاهرېدنه، جوتېدنه، ښکاره کېدنه.

# ع

**ع**[۱] (ʕayn) نر.م. د پښتو الفبې نهه ویشتم توری دی. ابجدي ارزښت یې ۷۰ دی.

**ع**[۲] (ʕayn) نر.م. د عیسوي (سني) مخفف.

**عابد** (ʕābíd) ص. نر.م. ج. (عابدان) عبادت کونکی، رب پالی، پارسا.

**عابر** (ʕābír) نر.م. (ج. عابران، عابرین) لاروي، تېرېدونکی، تلونکی.

**عاج** (ʕāj) نر.م. پیلغاښ، په خاص ډول د نر پیل د نیښ د دوو غاښونو هډوکي او په عام ډول د پیل هر غاښ ته وایي.

**عاجز** (ʕājíz) ص. نر.م ۱) خوارکی، بېوزلی؛ ۲) بې وسه، ناتوانه؛ ۳) بې غرضه.

**عاجزانه** (ʕājızānā́) ق. ۱) په عجز سره، په بېوزلی؛ ۲) غریبانه.

**عاجزه** (ʕājızā́) ص. نب. ۱) و.گ. عاجز؛ ۲) ص. ښځ. م. د عاجز مؤنث؛ ۳) مج. ښځه، اَجیزه.

**عاجزي** (ʕājızí) ښځ. م. ۱) خواري، غریبي؛ ۲) کم نوسي؛ ۳) بې غرضي.

**عاجل** (ʕājíl) ص. نر.م. ج. ۱) بیړه کوونکی، هڅه کوونکی؛ ۲) ضروري، فوري؛

**عادت** (ʕādát) نر.م. (ج. عادتونه) ۱) خوی، روږد، خصلت؛ ۲) روږدېدنه، روږدي.

**عادتاً** (ʕādatán) ق. ۱) د عادت له مخې، د خصلت له مخې؛ ۲) معمولاً.

**عادتي** (ʕādatí) ص. نب. نر. ښځ. م. روږدی، عادت شوی، عملي، اموخته.

**عادل** (ʕādíl) ص.نر.م.ج (عادلان) عدل کوونکی، انصافدار، انصافي.

**عادلانه** (ʕādılānā́) ق. د عدل له مخې، منصفانه، په عدل سره.

**عادي** (ʕādí) ص. نب.نر. ښځ. م. ج. ۱) روږدی، اموخته، عادت کړی؛ ۲) ساده، معمولي.

**عار** (ʕār) نر.م. ۱) شرم؛ ۲) پېغور؛ ۳) عیب.

**عارض** (ʕāríz) ص. نر.م. ج. ۱) عرض کوونکی؛ ۲) عرضه کوونکی؛ ۳) پېښېدونکی؛ ٤) پيدا کېدونکی؛ ٥) پر بل شي قايم؛ ٦) نر.م. اننګی، بارخو، غومبوری.

**عارضه** (ʕārizá) ښځ.م. ۱) د عارض مؤنث، عرض کوونکی؛ ۲) پېښه، حادثه؛ ۳) آفت؛ ٤) ناروغي؛ ٥) اړتيا.

**عارضي** (ʕārizí) ص.نب.نر.ښځ.م. ۱) سرسري؛ ۲) موقتي؛ ۳) ناڅاپي، تصادفي؛ ٤) د عارض عمل و شغل؛ ٥) فرعي، نا اصلي.

**عارف** (ʕārif) ص.نر.م (ج.عارفان) ۱) پېژندونکی ۲) پوه، هوښيار؛ ۳) خدای پېژندونکی.

**عارفانه** (ʕārifāná) ق. ۱) د عارف غوندې؛ ۲) ص. په عرف يا عادت اړوند، د عارف.

**عاري** (ʕārí) ص. نب.نر. ښځ. م.ج. ۱) لوڅ، لغړ، بربنډ؛ ۲) پرته، ماسېوا؛ ۳) ليرې، بې اړيکې.

**عاريت** (ʕāriyát) نر.م. عاريه؛ پور، امانت.

**عاريتاً** (ʕāriyátán) ق. په عاريت سره، د عاريت په توګه.

**عاريتي** (ʕāriyatí) ص.نب.نر.ښځ.م.ج. ۱) د پور، د امانت؛ ۲) د موقتي استفادې شی.

**عازم** (ʕāzím) فا.نر.م.ج. ۱) عزم کوونکی، قصد کوونکی، د ارادې خاوند؛ ۲) تلونکی.

**عاشق** (ʕāšúq) ص. نر.م. (ج. عاشقان) مين؛ زړه بايلونکی، په عشق اخته.

**عاشقانه** (ʕāšuqāná) ق. ۱) د عشق په ډول؛ ۲) ص. د عشق، په مينې اړوند، عشقي.

**عاشقي** (ʕāšuqí) ښځ.م. مينه، عشق، مين توب.

**عاشورا** (ʕāšorá) ښځ.م. عاشوری؛ لسمه، د محرم الحرام د مياشتې لسمه.

**عاصي** (ʕāsí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) ګنهکار، ګناه کوونکی؛ ۲) سرکښه، نافرمانه.

**عاطف** (ʕātíf) ص. نر.م. ج. ۱) مهربانه، مهرباني کوونکی؛ ۲) مايل، مشتاق؛ ۳) اړوونکی.

**عاطفه** (ʕātifá) ښځ.م. (ج.عاطفې) ۱) د عاطف مؤنث؛ ۲) مهرباني، زړه سوی؛ ۳) د خپلوۍ او قرابت مهر.

**عاطل** (ʕātíl) ص. نر.م. ج. ۱) بېکاره، ناڅيز؛ ۲) لټ، تنبل؛ ۲) بې مانا، مهمل، باطل.

**عافيت** (ʕafiyát) نر.م (ج. عافيتونه) ۱) روغتيا، روغوالی، صحت؛ ۲) کراري، کراره کراري.

**عاق** (ʕāq) ص.نر.م.ښهلي؛ مور و پلار ازاروونکی؛ (فق) په لغت کې د غوڅولو مانا لري.

**عاقبت** (ʕāqibát) نر.م. پای، آخر، د يوه کار پای، د کار آخر، د هر شي پای.

**عاقل** (ʕaqíl) ص. نر. م. (ج. عاقلان) هوښيار، پوه، دانا، عقلمند.

**عاقلانه** (ʕāqilāná) ق ۱) د عقل له مخې، عقلمندانه ۲) ص. په عقل يا عاقل اړوند، سم، مناسب.

**عاقي** (ʕāqí) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. عاق شوی، د عاق اطلاق باندې شوی.

**عالم**[1] (ʕālám) نر.م (ج.عالمونه) ۱) نړۍ، دنيا؛ ۲) خلک؛ ۳) زمانه، روزګار؛ ٤) کاينات.

**عالم**[2] (ʕālím) ص. نر.م. (ج. عالمان، علماء)، پوه، پوهاند، د علم و پوهې څښتن.

**عالمګير** (ʕālamgír) ص. نر.م.ج. ۱) نړۍوال، جهاني؛ ۲) هغه څوک چې دنيا فتح کړي.

**عالي** (ʕālí) ص.نب.نر.ښځ.م.ج. ۱) لوړ، جګ؛ ۲) شريف، محترم؛ ۳) د لوی خدای يو نوم.

**عام** (ʕām) ص. نر.م.ج. ۱) د ټولو، د ګردو؛ ۲) عوام، خلک، د خاص ضد.

**عام المنفعه** (ʕāmulmunfaʕá) ص. نب. په عامې گټې رسونې اړوند، د خلکو په گټه.

**عام فهم** (ʕāmfáham) ص. نر. م. ج. عام فهمه، ساده، آسان.

**عامل** (ʕāmíl) ص. نر. م. ج. ۱) عمل کوونکی؛ ۲) نر. م. سبب، علت؛ ۳) کارگر؛ ٤) حاکم.

**عاموالی** (ʕāmwā́lay) نر. م. عمومیت، عموموالی، عامېدنه.

**عامول** (ʕāmawə́l) مص. مت. ۱) عمومي کول، عام کول؛ ۲) رواجول، رایجول.

**عامه** (ʕāmá) ص. نب. ۱) عام. د ټولو، عمومي، د عام مونث؛ ۲) عوام، خلک.

**عامي** (ʕā́mi) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) نالوستی، بې سواده، اُمي؛ ۲) مج. جاهل.

**عامیانه** (ʕāmyāná) ق. ۱) د عوامو په څېر؛ ۲) ص. نب. ولسي، دخلکو، دعامو خلکو.

**عامېدل** (ʕāmedə́l) مص. ل. ۱) عمومي کېدل؛ ۲) رواجېدل، مروجه کېدل.

**عاید** (ʕāyíd) نر. م (ج. عایدات) عائد ۱) راستنېدنه راگرځېدنه؛ ۲) واقع، پېښ؛ ۳) گټه، دخل.

**عایداتي** (ʕāyıdā́ti) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ۱) دعاید، په عاید اړوند؛ ۲) د گټې، د دخل.

**عایق** (ʕāyíq) ص. نر. م. ج. ۱) ستنوونی، خنډ، مخه نیوونکی، مانع؛ ۲) (فز.) هغه جسم چې برېښنا او تودوخه نه تېروي.

**عایله** (ʕāyılá) ښځ. م. ربغړ، واره زاره، کورنی، فامیل، عیال، عائله.

**عبادت** (ʕıbādát) نر. م (عبادتونه) ۱) رب پالي، بندگي؛ ۲) لمانځنه؛ ۳) د خدای اطاعت.

**عبادتځای** (ʕıbādatʒā́y) نر. م. د عبادت ځای، عبادت خونه.

**عبادتي** (ʕıbādatí) ص. نب. نر. ښځ. م ۱) د عبادت، د لمانځنې؛ ۲) عابد، عبادت کوونکی.

**عبارت** (ʕıbārát) نر. م (ج. عبارتونه) ۱) بیانونه، شرح کونگ؛ ۲) دالفاظو ترکیب؛ ٤) و. گ. پراگراف؛ ۵) انشاء.

**عباسي** (ʕabāsí) نر. م. عباسي گل، یو ډول گل دی چې رنگ یې سور یا ژېړ وي.

**عباسی** (ʕabāsáy) ښځ. م. ج. عباسي؛ ۱) نیمه پېړۍ پخوا یوه سکه وه چې ۱۲ ایکۍ یا ۱۲ پیسې کېده؛ ۳) ټنگه، تنگه.

**عبث** (ʕabás) ص. نب. ۱) بابیزه، بې گټې، چټي، ببهوده؛ ۲) پرځای نه مصرفونه، سم نه لگونه.

**عبثول** (ʕabasawə́l) مص. مت. ۱) بابیزه کول، بې گټې کول؛ ۲) پرځای نه مصرفول.

**عبثېدل** (ʕabasedə́l) مص. ل. ۱) بابیزه کېدل، ببهوده کېدل؛ ۲) سم نه لگېدل.

**عبد** (ʕabd) نر. م. (ج. عباد) ۱) بنده، دخدای جل جلاله بنده؛ ۲) مریی، غلام.

**عبراني** (ʕıbrā́ni) ص. نب. یهودي، عبري، کلیمي، جهودي؛ ۱) ښځ. م. د یهودو لرغونې ژبه چې تورات په دغه ژبه نازل شوی دی؛ ۲) نر. م. ج. یهود، جهودان، عبراني؛ ۳) یو ډول لیک دی.

**عبرت** (ʕıbrát) نر. م ۱) پانیات، پند؛ ۲) سنجونه.

**عبرتناک** (ʕıbratnā́k) ص. نر. م. ج. د پند، د پانیات، د عبرت وړ، د پند وړ.

**عبقریت** (ʕabqaryát) نر. م. نبوغ.

**عبور** (ʕubū́r) نر. م. تېرېدنه، پورېوتنه، جاروتنه؛ عبورو مرور، تگ و راتگ، تېرېده راتېرېده.

**عبهر** (ʕabhár) نر. م. نرگس، د نرگس گل.

**عبیر** (ʕabír) جن. یوه ماده ده چې ښه بوی لري او له مشکو، گلاب او زعفرانو څخه مرکبه ده.

**عتاب** (ʕɪtā́b) نر.م. ۱) خوشکه، قهر، غضب؛ ۲) ملامتونه، رټنه؛ ۳) ناز.

**عتیق** (ʕatī́q) نر.م.ج. ۱) زوړ، پخوانی، لرغونی، عتیقه، انتیک؛ ۲) آزاد شوی مریی.

**عتیقه** (ʕatiqā́) ص. نب. نسر. ښځ. م.ج. زوړ، انتیک، پخوانی، لرغونی، څنډن.

**عجالتاً** (ʕɪjā́latán) ق. ۱) د بیړې له مخې، د تلوار له مخې؛ ۲) سمدلاسه، ژر.

**عجایبگر** (ʕajāyɪbgə́r) نر.م. موزیم.

**عجب**[1] (ʕajā́b) ص. نر.ج. ۱) عجبه، عجیب، تعجب پاروونکی، د حیرانتیا؛ ۲) تعجب.

**عجب**[2] (ʕujb) نسر.م. ۱) په ځان نازېدنه، ځان خوښونه؛ ۲) لویي، غرور، کبر، مرغوږنه.

**عجز** (ʕujz) نر.م. ناتواني، بې وسه کېدنه، ناتوانه کېدنه، بې وسي، انه، اجسکي.

**عجله** (ʕajalā́) ښځ.م. بیړه، تلوار، شتاب.

**عجم** (ʕajā́m) ص. نر.م.ج. نا عرب؛ څوک چې عرب نه وي؛ ۱) گونگی؛ ۲) پرحرف تکی اینښودل؛ ۳) امتحانول.

**عجیب** (ʕajī́b) ص. نر.م.ج. و گ. عجب[1].

**عدالت** (ʕadālā́t) نر.م. ۱) نیاو گلوي، انصاف؛ ۲) برابري، مساوات.

**عداوت** (ʕadāwā́t) نر.م. (ج. عداوتونه) دښمني، میرځي، بدي، کینه.

**عدت** (ʕɪdā́t) نر.م. (ج. عدتونه) عده؛ ۱) شمېر، شمار؛ ۲) د حیض ورځي.

**عدد** (ʕadā́d) نسر.م. (ج. عددونه، اعداد) شمېر، شمار، ۱) هغه کلیمه چې شمېر بیانوي؛ یا: د شیانو یوي یا څو مجموعو ته عدد وايي.

**عددي** (ʕadadī́) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. د عدد، په عدد اړوند، په عدد پورې تړلی.

**عدس** (ʕadā́s) نسر.م.ج. نسک، نسکان، د باقلي د کورنۍ یو نبات دی.

**عدسیه** (ʕadasyā́) ښځ.م. (ج. عدسیې) هغه ښیښه یا شفاف محیط چې د دوو کروي سطحو یا یوې کروي سطحې او یوې مستوي په وسیله محاط شوی وي.

**عدل** (ʕā́dəl) نسر.م. ۱) نیاو، انصاف، تیکنه؛ ۲) ساری، مثل؛ ۳) څوک چې شهادت یې د قبلېدو وړ وي.

**عدلیه** (ʕadlyā́) ص. نب ۱) د عدل، په عدل اړوند؛ ۲) ښځ.م. د انصاف یا نیاو ځای؛ ۳) د عدلیې وزارت.

**عدم** (ʕadā́m) نسر.م. نشتوالی، نابودي، نشت، د نه موجودیت حالت.

**عدو** (ʕadū́) نر.م. دښمن، میرځی، دښن، غلیم.

**عدول** (ʕadū́l) مص. ل ۱) بېرته گرځېدنه، له لارې گرځېدنه؛ ۲) د قافیې د برابرۍ لپاره تصرف کول عدول بلل کېږي

**عده** (ʕɪdā́) ښځ. م ۱) و گ. عدت؛ ۲) شمېر، تعداد.

**عدیل** (ʕadī́l) ص. نر.م.ج ۱) برابر، سیال، ورته؛ ۲) نر.م.ج. د کجاوې د یوې خوا سپرلی.

**عذاب** (ʕazā́b) نر.م. (ج. عذابونه) تکلیف، ځور، شکنجه، ربړ، زحمت.

**عذابول** (ʕazābawā́l) مص. مت. ځورول، ربړول، تکلیفول.

**عذابېدل** (ʕazābedā́l) مص.ل. ځورېدل، ربړېدل، په کړاو اخته کېدل.

**عذر** (ʕuzar) نسر.م. (ج. عذرونه) ۱) بانه، بهانه؛ ۲) زاری، ننواتې، معذرت؛ ۳) پرده، چاره؛ ٤) پالنه؛ ٥) حیض لرنه.

**عذرمن** (ʕuzarmā́n) نر.م.ج. معذور، عذرجن.

**عرابه** (ʕarābá) ښځ. م. (ج. عرابې) ارابه، پهل، ورګړ؛ د موټر او ګاډۍ ارابه.

**عراده** (ʕarādá) ښځ. م. ۱) و ګ. عرابه؛ ۲) منجنيق ته ورته يوه جګړه ييزه آله وه؛ ۳) عدد، دانه.

**عرش** (ʕarš) نر. م ۱) پلاز، د پاچا تخت؛ ۲) کرسي؛ ۳) دخداى (ج) پرتم او کبريايي تصوير؛ ٤) خيمه ٥) چتر، سايوان؛ ٦) چت، پشتول.

**عرصات** (ʕarasát) نر. م. له قيامت، لويې ورځې، د قيامت له ورځې او د محشر له سارا څخه کنايه.

**عرصه** (ʕarsá) ښځ. م. (ج. عرصې، عرصات) د کور غولى (انګړ، انګڼ)، ډاګ، ميدان.

**عرض**[1] (ʕarz) نر. م. (ج. عرضونه) پسور، بر، سور، د طول خلاف؛

**عرض**[2] (ʕaráz) نر. م. ۱) هغه څه چي قايم بالغير وي، نابنسټيزه کيفيت؛ ۲) عارضه، ناجوړي؛ ۳) پېښېدونکى؛ ٤) بې دوامه شى ٥) سردار، د لښکرمشر؛ ٦) متاع، د خرڅلاو شى.

**عرضاً** (ʕárzán) ق. په عرض سره، د سور له مخې.

**عرض بېګي** (ʕarzbegí) ص. نر. م. عريضه اخيستونکى، عرض اخيستونکى.

**عرض والا** (ʕarzwālā́) ص. نب. عرض کوونکى، چا چې عرض کړى وي.

**عرضه** (ʕarzá) ښځ. م. ۱) څرګندونه، ښکاره کونه ۲) اق. د تقاضا ضد، د خرڅلاو لپاره د يوه شي وړاندې کول.

**عرضي** (ʕarzí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) عارض، عرض کوونکى؛ ۲) په عرض يا سور اړوند.

**عرعر** (ʕarʕár) نر. م. ۱) غرنى سرو؛ ۲) هرهر؛ يو ډول چنار دى.

**عرف** (ʕurf) نر. م. ۱) شناخته؛ ۲) دود، دستور، رواج؛ ۳) ښه والي، ښېګڼه؛ ٤) خوى، عادت.

**عرفان** (ʕırfán) نر. م. ۱) پېژندنه؛ ۲) د حق معرفت، د حق تعالى پېژندنه؛ ۳) پوهونه او روزنه.

**عرق**[1] (ʕaráq) جن. خوله؛ ۱) څوز، هره هغه مايع چي په ايشولو سره د تقطير په ډول لاس ته راشي؛ ۲) شراب؛ ۳) و ګ. خوله[2] ۱).

**عرق**[2] (ʕırq) نر. م. (ج. عروق) ۱) رګ؛ ۲) اصل؛ ۳) نژاد؛ ٤) ريښه، جرړه.

**عرق النسا** (ʕırqunasá) ښځ. م. سياټيک.

**عروج** (ʕurúj) نر. م ۱) پورته خواته تلنه؛ ۲) لوړتيا، لوړوالى، پورته والى، ترقي.

**عروض** (ʕorúz) نر. م. ۱) د شعر ميزان؛ ۲) د بيت د لومړۍ مسرۍ وروستى رکن؛ ۳) د کلام مضمون؛ ٤) د غره لاره؛ ٥) عرضه کول.

**عروضي** (ʕarūzí) مص. نر. ښځ. م. د عروض په عروض اړوند.

**عريض** (ʕaríz) ص. نر. م. ج. ۱) پلن، سورور، پسورلرونکى؛ ۲) د شعر يو بحر دى.

**عريضه** (ʕarizá) ښځ. م. (ج. عريضې) ۱) عرض پاڼه، د عرض پاڼه.

**عريضه چي** (ʕarizačí) ص. نر. م. ج. عارض، د عريضې خاوند، عرض کوونکى.

**عزت** (ʕızát) نر. م. درناوى، احترام، ګرانښت.

**عزت النفس** (ʕızatunáfs) نر. م. خپل ځان (آب و حيثيت) ته په درنښت کتنه.

**عزتمن** (ʕızatmán) ص. نر. م. ج. پتمن، عزتناک، عزتي، قدرمن.

**عزل** (ʕázal) نر. م. معزوله، بېکاره کونګ، له کاره ايستنه، ګوښه کول، شړنه.

**عزلت** (ʕuzlát) نر. م. له خلکو ليرې ګرځېدنه، ګوښه ګيري.

**عزم** (ʕázam) نر. م. اراده، قصد، انګځه.

**عزیز** (ʕazíz) ص. نر.م. ۱) د یوه قوم خاوند؛ ۲) گران، محبوب؛ ۳) محترم؛ ٤) برلاسی، زورور؛ ۵) دالله یو نوم دی؛ ٦) خپل، خپلوان.

**عزیزتوب** (ʕaziztób) نر.م. عزیزگلوي، عزیزوالی، عزیزداري، عزیزي، عزیزولي.

**عزیمت** (ʕazimát) نر.م. ۱) هوډ، انگښه، نیت، اراده، قصد؛ ۲) افسون، دم، پارو.

**عسرت** (ʕusrát) نر.م. تنگسه، ښکالوه، سختي.

**عسکر** (ʕaskár) نر.م. ج ۱) ژوبلور، سرتېر، سرباز ۲) پوځ، فوځ؛ ۳) مج. تکړه او امر منونکی.

**عسکرکوټ** (ʕaskárkōṭ) نر.م. چوڼۍ، چاوڼۍ، قشله، کمپ، لښکرگاه.

**عسکري** (ʕaskari) نب. نر. ښځ. م. ۱) د عسکر، په عسکر اړوند؛ ۲) په اردو اړوند؛ ۳) ښځ. م. نظامي چوپړ، د سرتېرۍ خدمت؛ ٤) نر. م. یو ډول خوندور کندهاري انگور دي.

**عسکریت** (ʕaskaryát) نر.م. ۱) عسکرتوب؛ ۲) د وطن د ساتنې لپاره د جگړې د فن د زده کړې مکلفیت او په دې اړوند د دندو ترسره کول.

**عسل** (ʕasál) جن. و گ. گبین.

**عشاء** (ʕišā́) نر.م. ښځ. م. ماخوستن، ماسخوتن.

**عشاء رباني** (ʕašāırabānī) ښځ.م. عشای رباني، حلولیت، حلولیه، د عیسویانو له نظره مسیح ته د خدای ملمستیا ده.

**عشاري** (ʕašārí) ص. نب. نر. ښځ. م. عشاریې پورې اړوند، اعشاري کسر.

**عشاریه** (ʕašārıyā́) ښځ. م. خال، اعشاریه؛ ۱) په لسو یا عشر اړوند؛ ۲) عشاریه کسر: هغه کسر چې د واحد له یوه یاځو برخوخخه جوړ وي؛ عشاري عدد: هغه عدد چې له صحیح عدد او عشاري کسر څخه جوړ وي

**عشر** (ʕušár) نر.م. ۱/۱۰، لسمه، لسمه برخه، له لسو څخه یوه.

**عشرت** (ʕıšrát) نر.م. (ج. عشرتونه) ۱) عیش، چرچې، ښه ژوند؛ ۲) دوستي؛ ۳) صحبت.

**عشق** (ʕıšq) نر.م. ۱) مینه، دوستي، گرانښت؛ ٤) جنسي جذبه یا ددې اقناع؛ ۵) چا ته چې یو شی یا څوک ډېره په زړه پورې وي.

**عشوه** (ʕıšwa) ښځ. م. ۱) نخره، ناز، مکیز، قنج، کرشمه؛ ۲) ناځرگنده چاره، پټ چار.

**عشیره** (ʕašíra) ښځ. م. د اتنیک جوړښت یو واحد دی، چې په پښتو «خېل» ورته وایي، د څو عشیرو مجموعې ته طایفه وایي.

**عصا** (ʕasā́) ښځ. م. ۱) امسا، لکړه، د لاس لرگی؛ ۲) د پاچهۍ نخښه، شاهي علامه.

**عصاره** (ʕusārá) جن. ۱) شیره، ځوښه؛ ۲) د مېوې او به چې په فشار سره راایستل شوې وي.

**عصب** (ʕasáb) نر.م (ج. عصبونه، اعصاب) لوبه یا وړه رشته ده چې په بدن کې له عصبي سیستم سره ارتباط لري.

**عصباني** (ʕasabānī) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. خوشکتی، ترله وتلی، عصبي، قهرجن.

**عصب پوهنه** (ʕasábpōhā́na) ښځ. م. نیورولوژي په طب کې د اناتومۍ هغه څانگه چې د عصبي سیستم او د هغه له ناروغیو سره سروکار لري.

**عصبي** (ʕasabí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) خوشکتي عصباني، قهرجن؛ ۲) متعصب؛ ۳) د عصب، په عصب اړوند، په عصبي سیستم اړوند.

**عصر** (ʕásər) نر.م. ۱) مازدیگر، مازیگر، لرمل؛ ۲) پېړۍ؛ ۳) دهر، روزگار؛ ٦) کښیکښل.

**عصري** (ʕasrí) ص. نب. نر ښځ. م. ج. ۱) د وخت و عصر، په عصر اړوند؛ ۲) له وخت و زمان سره

برابر؛ ۳) مج. نوی، موډرن، لوکس.

**عصريت** (ʕasrıyā́t) نر.م. عصري توب، تجدد، عصري والی، له عصر سره سم حرکت.

**عصمت** (ʕısmā́t) نر.م. ۱) سپين لمني، عفت، سپېڅلتوب؛ ۲) له ګناه څخه د نفس ساتنه.

**عصيان** (ʕısyā́n) نر.م. ۱) طاعت ترک کول؛ ۲) نافرماني، سرغړونه.

**عضلوي** (ʕazlawī́) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. د عضلې، په عضله اړوند، د غړي.

**عضله** (ʕazalá) ښځ. م. (ج. عضلات، عضلې) غړی، د بدن غړی، مورک، ماهيچه، مړه.

**عضو** (ʕūzwá) ښځ. م. عضوه، غړی؛ ۱) اندام، د بدن يوه برخه؛ ۲) د يوې ټولنې يا ادارې غړی.

**عضوي** (ʕuzwī́) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) د عضو، په عضو اړوند؛ ۲) د کېميا په هغې څانګې اړوند چې د کاربون له ترکيبو سره سر و کار لري، له ژوندي اورګانيزم څخه مشتق شوي وي.

**عضويت** (ʕuzwıyā́t) نر.م. ۱) د عضو توب صفت لرنه؛ ۲) غړيتوب؛ ۳) د غړيتوب پيسې.

**عطا** (ʕatā́) ښځ.م. عطاء، بخښښ، بخښنه، ورکړه، بخشش.

**عطار** (ʕatā́r) نر.م. ۱) عطاري، عطر پلورونکی؛ ۲) پساري.

**عطالت** (ʕatālā́t) نر.م. ۱) وزګارتيا، لټي؛ ۲) فز. اينرشه، د جبر قوت يا خاصيت، د قوې په مقابل کې د جسم مقاومت.

**عطر** (ʕā́tar) جن. (جن. عطرونه) ۱) يوه ماده ده چې ښه بوی لري؛ ۲) ښه وږم، خوشبويي.

**عطف** (ʕatf) نر.م. ۱) راګرځېدنه؛ ۲) کوم خوا ته مايل کېدنه؛ ۳) ربط، د عطف د حرف په وسيله يوې کليمې ته له مخکېنۍ کليمې سره ربط ورکول.

**عطوفت** (ʕutūfát) نر.م. مينه، محبت، دوستي، مهرباني، شفقت.

**عطيه** (ʕatıyá) ښځ. م. (ج. عطيې) بخشش.

**عظمت** (ʕazamát) نر.م. ۱) لويي، ستروالی، لويوالی؛ ۲) پرتم، اکوب، شان و شوکت.

**عظمی** (ʕuzmā́) ص. ښځ. م. ج. اعظمه، ستره، عظيمه، تر ټولو لويه.

**عظيم** (ʕazím) ص. نر.م. ج. ستر، غټ، لوی.

**عظيم الجثه** (ʕazímuljusá) ص. نب. تنه ور، د غټې تنې يا ستر بدن خاوند.

**عفت** (ʕıffát) نر.م. ۱) پاکي، پاک لمني، عصمت؛ ۲) پرهېزګاري؛ ۳) شهوت ترک کول.

**عفو** (ʕáfwa) ښځ. م. (ج. عفوې) عفوه، بخښنه، د چا له ګناه څخه تېرېدنه.

**عفونت** (ʕufunát) نر.م. ۱) فاسدېدنه، خوسا کېدنه؛ ۲) نر.م. بدبويي.

**عفوني** (ʕafūnī) ص. نب. ښځ. م. ۱) فاسدېدنه؛ ۲) بدبويي؛ ۳) خوند او بوی بدلېدنه.

**عفيف** (ʕafī́f) ص. نر.م. ج. ۱) پارسا، ستانه، ديندار؛ ۲) سپين لمنی، پاک لمنی.

**عقاب**[1] (ʕuqā́b) نر.م. ګربت، ګوربت، يو پياوړی، غټ و چټک الوتونکی ښکاري مرغه دی.

**عقاب**[2] (ʕıqā́b) نر.م. عذاب، ځور، شکنجه.

**عقايد** (ʕaqāíd) نر. ج. ۱) د عقيده جمع؛ ۲) هغه علم چې اسلامي حقه عقايد څېړي.

**عقب** (ʕaqíb) ق. و ګ. شا ۱).

**عقبی** (ʕuqbā́) ښځ. م. ۱) آخرت، بله دنيا، ابدي دنيا؛ ۲) جزا، د عمل سزا؛ ۳) قيامت.

**عقد** (ʕaqd) نر.م. ۱) تړنه؛ ۲) غوټه ورکول؛ ۳) عهد و پيمان ټينګول.

**عقده** (ʕuqdá) ښځ. م. ۱) غوټه، گره؛ ۲) په زړه کې قهر، درد و محرومیت پیدا کېدنه؛ ۳) ضمیري تکرونه؛ ٤) وسواس، کرکه.

**عقربک** (ʕaqrabák) نر.م. د گړۍ ستن، د ساعت ښوونکې ستنه، وړه ستنه.

**عقل** (ʕáqəl) نر.م. (ج. عقلونه) ۱) سد، هوښ، د ښو او بدو د تمیز و بېلولو قوه؛ ۲) د سم قضاوت وړتیا؛ ۳) هوښیاري، فهم.

**عقلمن** (ʕaqalmə́n) ص. نر.م.ج. هوښیار، پوه، عقلمند، عاقل، د عقل څښتن.

**عقلمند** (ʕaqalmənd) ص. نر.م. وگ. عقلمن.

**عقلي** (ʕaqlí) ص. نب. نر. ښځ. م. په عقل اړوند، له عقلي اصولو سره سم، د سد، د هوښ.

**عقلیه** (ʕaqlıyá) ص. نب. وگ. عقلي.

**عقیدت** (ʕaqidat) نر.م. ۱) عقیده لرنه، ارادت لرنه، یقین لرنه؛ ۲) ایمان، دین.

**عقیدتمن** (ʕaqidatmə́n) ص.نر.م.ج. عقیدتمند ارادتمند، د عقیدې او احترام لرونکی.

**عقیده** (ʕaqidá) ښځ. م. (ج. عقیدې، عقاید) ۱) گروهه؛ ۲) باور، ایمان؛ ۳) مج. رأی، رایه؛ ٤) هغه څه چې انسان پرې اعتقاد لري.

**عقیده من** (ʕaqidamə́n) ص. نر.م.ج. عقیده لرونکی، معتقد.

**عقیق** (ʕaqíq) نر.م.ج. یو ډول سور قیمتي غمی یا کانی دی.

**عقیقه** (ʕaqiqá) ښځ.م. (ج. عقیقې) ۱) د نوي زېږېدلي انسان یا ژوي د نس ویښتان؛ ۲) هغه پسه چې د کوچني د زېږېدو پر اوومه ورځ د هغه د سرخریلو په مناسبت قرباني کېږي.

**عقیم** (ʕaqím) ص. نر.م.ج. ۱) شنډ، شنډه؛ ۲) بې حاصله، بې ثمره.

**عقیمول** (ʕaqimawə́l) مص. مت. ۱) شنډول، سړی یا ښځه له اولاده اچول؛ ۲) بې ثمره کول.

**عکاس** (ʕakā́s) ص. نر.م. (ج. عکاسان) عکس اخیستونکی، فوتوگرافر، څېره اخیستونکی.

**عکاسي** (ʕakāsí) ښځ.م. ۱) عکس اخیستنه، د عکاس دنده، فوتوگرافي؛ ۲) نر.م. یوه اغزي لرونکې ونه ده چې سپین یا ژیړ گلان کوي.

**عکس** (ʕákəs) نر.م. ۱) اړول، په بل مخ اړول؛ ۲) څېره، انځور، تصویر، فوتو، فوتوگراف.

**عکس العمل** (ʕaksulʕamál) نر.م. غبرگون، رد عمل، د عمل ځواب، متقابل عمل، ورگرځونه.

**عکس و تبدیل** (ʕākasutabdíl) نر.م. (بد.) په یوه بیت کې د لومړۍ فقرې کلمې په دویمه فقره کې داسې واړول شي چې د لومړۍ فقرې متضاده مانا افاده کړي عکس و تبدیل ورته وایي.

**عکس و طرد** (ʕáksutárd) نر.م. د بیت لومړی نیم بیتی پر دوو مساوي برخو وویشل شي او وړاندېنۍ برخه یې په دویمه نیم بیتي کې وروسته او دویمه برخه یې په دویم نیم بیتي کې وړاندې راشي.

**عکه** (ʕáka) ښځ.م. کشکره، گیرکه، عککه، یوه مرغۍ ده چې تورې او سپینې ښکې لري.

**علاج** (ʕılā́j) نر.م. (ج. علاجونه) ۱) درمل کول، درملنه؛ ۲) معالجه؛ ۳) سرشته، چاره کونگ.

**علاف** (ʕalā́f) نر.م. واښه خرڅوونکی؛ څوک چې غله یا اوړه رانیسي او خرڅوي یې.

**علاقه** (ʕalāqá) ښځ.م. (ج. علاقې) ۱) هغه څه چې انسان زړه پر تړلی وي؛ ۲) مج. مینه، محبت ۳) اړیکې، تړاو، پیوند؛ ٤) سیمه، ولکه.

**علاقه دار** (ʕalāqadā́r) ص. نر. م. د یوې سیمې اداره کوونکی چې رتبه یې له ولسوالۍ راکښته وي.

**علاقه داري** (ʕalāqadārī́) ښځ. م. له ولسوالۍ راکښته یو اداري تشکیل دی.

**علاقه مند** (ʕalāqamə́nd) ص. نر. م. ج. علاقمند، لېوال، مینه وال، علاقه لرونکی، شوقمن.

**علامت** (ʕalāmát) نر. م (ج. علامتونه، علامات) نښه، نښان، نخښه، نښکه، علامه، سمبول.

**علامه** (ʕalāmā́) ص. نب. سترپوه، غټ عالم، بې ساري عالم.

**علاوه** (ʕalāwā́) ص. نب. سربېره، زیات، اضافه.

**علت** (ʕılát) نر. م. (ج. علتونه) ۱) سبب، عامل، موجبه، جهت، وجه، دلیل؛ ۲) عیب؛ ۳) بهانه، عذر؛ ٤) ناروغي؛ ٥) اپت، آفت.

**علتي** (ʕılatī́) ص. نب. ۱) سببي، دعلت، د عامل، د موجبې؛ ۲) نر. ښځ. م. ج. د یوه جرم یا خطا یا نقص یا نقیصې لرونکی.

**علم**(۱) (ʕalám) نر. م. (ج. علمونه) ۱) علم شریف، جنډه، یو بیرغ دی چې په عسکري کې یو غونډ ته ورکول کېږي او د اردو شرف تمثیلوي؛ ۲) ص. نر. هغه نوم چې یو څوک پرې مشهور وي.

**علم**(۲) (ʕílm) نر. م. پوهنه، پوهه، معرفت، بصیرت، حکمت، معلومات، یقین.

**علماء** (ʕuləmā́) ص. نر. م. ۱) پوهان، پوهاندان، عالمان؛ ۲) ملایان، مذهب پوهان.

**علم الجمال** (ʕılυljamā́l) نر. م. و گ. ښکلاپېژندنه.

**علم الحیات** (ʕılmulhayā́t) نر. م. و گ. بیولوجي.

**علم الیقین** (ʕılmulyaqī́n) نر. م. هغه یقین چې په دلیل یا متواتر روایت حاصلېږي.

**علمبردار** (ʕalambardā́r) ص. نر. م. ج. مشر، مخکښ، د سر سړی، د یوه کار سرکرده.

**علم و خبر** (ʕılmūxabár) نر. م. ۱) کلمه چې یو مامور بلې موسسې ته تبدیلېږي، نو هغه ته د مسوولیت نه لرلو یا لرلو په نامه یوه پاڼه ورکوي چې علم وخبر ورته وایي؛ ۲) یو اطلاعاتي لنډیز.

**علمي** (ʕılmī́) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. علمیه، د علم، د پوهې، په علم و پوهې اړوند، ساینسي، د معرفت، د حکمت.

**علمیت** (ʕılmıyā́t) نر. م. پوهه، لیاقت، پوهنه، استعداد، علم و معرفت لرنه.

**علناً** (ʕálanán) ق. په ښکاره، په څرگنده، په ډاگه.

**علني** (ʕálanī́) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ښکاره، څرگند، جوت.

**علنیت** (ʕalanyā́t) نر. م. څرگندتیا، ښکاره توب، جوت تیا.

**علوم** (ʕulū́m) نر. ج. ۱) دعلم جمع، علمونه، پوهنې؛ ۲) ساینس، کیمیا، بیولوجي، فزیکس.

**علوي**(۱) (ʕulawī́) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. د سفلی ضد، لوړ، برنی.

**علوي**(۲) (ʕalawī́) ص. نب. نر. ښځ. م. (ج. علویان) حضرت علي (رض) ته منسوب یا له نسله.

**علی الخصوص** (ʕálalxusū́s) ق. په ځانگړې توگه، په تېره، مخصوصاً، په تېره بیا.

**علی المطلوبه مصادره** (ʕalalmatlūbəmusādarā́) ښځ. م. (من.) د مغالطې یو شکل دی چې په بالواسطه تعلیلاتو کې منځ ته راځي.

**علیت** (ʕılıyā́t) نر. م. هغه اړیکې چې د دوو شیانو ترمنځ موجود دي.

**علیحده** (ʕalāhıdā́) ص. نب ۱) بېل، جلا، گوښی؛ ۲) ق. ځانله، ځانگړی؛ ۳) اضافه، اضافي.

**عليل** (alīl؟) ص. نر.م.ج. ۱) ناروغ، ناجوړه؛ ۲) ناروغي، کمزوري کړی.

**عليم** (alīm؟) ص.نر.م.ج. (ج. علماء) عالم، پوه، د علم څښتن.

**عليه** (láyhī؟) ۱) پر هغه، پرې، په هغه باندې؛ ۲) پرضد، پرخلاف، مخالف.

**عمارت** (ımārát؟) نر.م(ج.عمارتونه) ۱) ودانۍ، ابادي، کور؛ ۲) ابادونه، جوړول.

**عمده** (umdá؟) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ۱) مهم؛ ۲) غټ، کلي ۳) د باور شی؛ ٤) د پرچون ضد.

**عمر** (úmar؟) نر.م. (ج. عمرونه) ۱) منګ، وګ. سن؛ ۲) ژوند، حيات.

**عمران** (ımrā́n؟) نر.م. وداني، آبادي.

**عمره** (umrá؟) ښځ. م. وړوکی حج. حج صغير.

**عمري** (umrí؟) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. د عمر، د تل لپاره، د ټول عمر لپاره.

**عمق** (umq؟) نر.م. ۱) ژورتيا، ژوروالی؛ ۲) د دښت لړې ساحه چې نه ښکاري.

**عمل** (amā́l؟) نر.م. (ج. عملونه، اعمال) ۱) چار، کار، کړنه؛ ۲) کړه وړه، خوی، اخلاق، عادت.

**عملاً** (ámálán؟) ق. د عمل له مخې، په عملي توګه په عملي ډول.

**عملنامه** (amalnāmá؟) ښځ. م (ج. عمل نامې) ۱) د عمل و سلوک نتيجه؛ ۲) د عمل و اخلاقو پاڼه؛ ۳) د اسلامي عقيدې په اساس هغه پاڼه ده چې د بنده عملونه په کې ليکل شوي دي.

**عمله** (amalá؟) ښځ.م. د عامل جمع، کارګران، کار کوونکي، عمله و فعله.

**عملي** (amalī́؟) ص.نب.نر.ښځ.م.ج. ۱) پلی، د پلی کېدو، تطبيقي، د اجرا، د عمل، په عمل اړوند.

**عمليات** (amalyā́t؟) نر.ج. ۱) عملونه، کړنې، تطبيقات؛ ۲) آپرېشن، د جراحی عمل سرته رسونه؛ ۳) حربي او نظامي چارې، جنګ جګړه.

**عملي کېدل** (amalīkedā́l؟) مص.ل. ۱) پلی کېدل، اجرا کېدل، تطبيقېدل؛ ۲) معتادېدل، روږدېدل.

**عمليه** (amalyá؟) ښځ. م. عمل، چاره، جريان.

**عمود** (umū́d؟) نر.م. ص. ۱) پايه، متې، ستنه؛ ۲) د قوم مشر؛ ۳) هـ. عموده کرښه، هغه طول چې د شاقول د تار په امتداد وي.

**عمودي** (umūdí؟) ص.نب.نر.ښځ.م. سم، سيخ، نيغ، د عمود، په عمود اړوند، عمود غوندې.

**عموم** (umū́m؟) نر.م.ج ۱) ټول، عام، واړه، ګرده؛ ۲) هغه څه چې په ډېرو شيانو کې ليدل کېږي.

**عموماً** (umū́mán؟) ق. بالعموم، په عمومي توګه، زياتره، په عام ډول.

**عمومي** (umūmí؟) ص. نب.نر. ښځ. م. د عموم، د عام، د زياترو، ټول، ګرده؛ عموم ته منسوب.

**عموميت** (umūmyát؟) نر.م. ۱) عاموالی، کلي توب؛ ۲) رواج، تعميم.

**عمه** (amá؟) ښځ. م. ترور، د پلار خور

**عميق** (amíq؟) ص. نر.م. ج. ژور، عمق لرونکی.

**عناب** (unā́b؟) نر.م. مرخنۍ، د بېرې غوندې يوه ونه ده چې سنځلې په څېر مېوه کوي.

**عناد** (ınā́d؟) نر.م. ۱) ينګ، هود، آغور؛ ۲) ضد، غچ؛ ۳) دښمني؛ ٤) سرغړونه.

**عنايت** (ınāyát؟) نر.م ۱) احسان، انعام؛ ۲) ساتنه، حفاظت؛ ۳) نيت، قصد؛ ٤) توجه؛ ٥) اهتمام.

**عنبر** (anbár؟) جن. ابهر، يوه غوړه خړه ماده ده چې ښه بوی لري او د عنبر نومې کب له کولمو يا ګېډې څخه را ايستله کېږي.

**عنبري** (ʕanbarí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) دعنبر، په عنبر اړوند ؛ ۲) ښه بوی لرونکی، عنبرين.

**عندليب** (ʕandalíb) نر.م. چوني، بلبل، بلبله.

**عنصر** (ʕunṡúr) نر.م ۱) اصل، آر؛ ۲) ماده، بسيط جسم؛ ۳) عناصر اربعه: باد، خاوره، اوبه او اور؛ ٤) ک. هغه جسم چې تول لـه هغـو اتمـو څخه جـوړ شوی وي چې يو اتومي عدد لري.

**عنعنه** (ʕanʕaná) ښځ. م. (ج. عنعنې) ۱) روايت، نقل؛ ۲) دود، رسم، رواج، دستور، عرف، لاره، تره.

**عنقا** (ʕunqā́) نر.م. ورک مرغه، «سيمرغ»؛ يو افسانوي ستر مرغه دی.

**عنقريب** (ʕanqaríb) ق. ژر، ژر به... نږدې، ژر تر ژره به...

**عنكبوت** (ʕánkabut) نر.م. و گ. غنې.

**عنوان** (ʕ(u,ı)nwā́n) نر.م. ۱) سرليک، سرنامه؛ ۲) سريزه، مقدمه؛ ۳) نښه، نښاني، پته.

**عواطف** (ʕawātíf) ښځ. م. ۱) د عـاطـفه جـمـع؛ ۲) انفعال (خوښي او وير) چې د بر لې په مجرده او بسيطه توگه پاته کېږي.

**عوام** (ʕawā́m) نر.ج. د (عامه) جمع، وگړي، خلک؛ د يوې ټولنې يا هېواد اکثريت.

**عوام فريب** (ʕawā́mfaríb) ص. نر. م. ج. عوام غولوونکی، دخلکو تېرايستونکی، ديماگوگ.

**عوامل** (ʕawāmíl) نر.م. دعامل جمع ۱) کاريگران؛ ۲) دکار غوايان؛ ۳) فاکتوررون.

**عوامي** (ʕawāmí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ولسي وگړنيز، د خلکو، د وگړو، د عوامو.

**عود** (ʕud) نر.م. ۱) لـرگی؛ ۲) لـه وني څخـه پـرې شوی ښاخ؛ ۳) دهند و هندوچين د سيمو يو ډول ونه ده چې له لرگي څخه يې د سوځېدلو په وخت ښه وږم ولاړېږي؛ ٤) د موسيقي يوه تاريزه او ليندۍ والا آله ده.

**عورت** (ʕawrát) نـر.م. ۱) پټ ځـای، شرم ځای؛ ۲) تناسلي آله؛ ؛ ۳) ښځه.

**عورته** (ʕawráta) ښځ. م. و گ. اورته.

**عوض** (ʕıwáz) نـر.م. ۱) بدل، الش، يو شـی د بل شي په بدل کې ورکول؛ ۲) بدل، موخې.

**عوضي** (ʕıwazí) ص. نب. نر. ښـځ. م. ۱) ځـای ناسـتی، جانشـين؛ ۲) مـوخې؛ ۳) پـه عـوض اړوند.

**عهد** (ʕáhd) نر.م. ۱) ژمنه، قول، وعده؛ ۲) تړون، بندڼ؛ ۳) زمان، روزگار؛ ٤) وفا؛ ٥) قسم.

**عهدنامه** (ʕáhdnāmá) ښځ. م. تړون ليک، بندڼ ليک، د قرارداد پاڼه، لوزنامه.

**عهده** (ʕuhdā́) ښځ. م. ۱) ذمه، غاړه؛ ۲) کفالت؛ ۳) مسووليت؛ ٤) تړون، پيمان؛ ٥) مج. وظيفه.

**عيادت** (ʕıyādát) نـر.م. د ناروغ ليدو تـه تگ و د ناروغ پوښتنه کول.

**عيار**[1] (ʕıyā́r) نـر.م. ۱) امتحـان، ازمېښت؛ ۲) دسرو يا سپينو زرو د اندازې سنجولو مقياس.

**عيار**[2] (ʕayā́r) ص. نر. ج. ۱) څوک چې ډېـر تگ وراتگ کـوي؛ ۲) چمباز، تگ؛ ٤) په منځنيـو پېړيو کې زموږ دهېواد يوه ډله چې کارېې ځواني کول، له ځانه تېرېدنه او کله د مذهب د اصـولو يا فروعو سره لېوالتيا نه درلودل.

**عياش** (ʕayā́š) ص. نـر.م. ج. عيشـي، ميله باز، ميله يي، چرچه يي.

**عياشي** (ʕayaší) ښځ.م. ۱) چرچې، مېلې، عيش کول؛ ۲) وزگارتيا، لوچکي.

**عيال** (ʕayā́l) نر.م. (ج. عيالونه) ۱) ربغړ، بال بچ، ښځه او اولاد؛ ۲) ښځه، ماندينه، کډه.

**عیان** (ʕ(a,ı)yā́n) ص. نر.م. ج. ۱) اوڅار، جوت، څرگند؛ ۲) په لېدلو باندې یقین؛ ٤) معاینه.

**عیب** (ʕayb) نر.م. (ج. عیبونه) ۱) نقص، نقصان، بدي، نیمګړتیا؛ ۲) بدنامي؛ ۳) ګناه.

**عیبجن** (ʕaybján) ص. نر.م. ج. ۱) عیبناکه، عیبي، نقصاني؛ ۲) مضر، ضررناکه.

**عید** (ʕid) نر.م. ۱) اختر؛ ۲) جشن، د جشن ورځ.

**عیدگاه** (ʕidgā́h) ښځ. م. اخترځی، هغه ځای چې په هغه کې د اخترونو لمونځونه کېږي.

**عیسویت** (ʕisawyát) نر.م. مسیحیت، عیسایت، د کریشتانیانو دین، نصرانیت، د حضرت عیسی (ع) دین، عیسوي دین.

**عیش** (ʕayš̌) نر.م. ۱) مزې، عشرت، چرچې؛ ۲) ژوند، ژوندون.

**عین** (ʕayn) نر.م. ۱) سترګه؛ ۲) د «ع» د توري اواز؛ ۳) ذات، نفس؛ ٤) خالص، واضح؛ ٤) چمتو؛ ٥) ص. نب. عیناً، عیني، کټ مټ، بشپړ، ورته، یو، یو شان؛ ٦) چینه.

**عین الیقین** (ʕaynulyaqín) نر.م. ۱) په سترګو د یوه شي لیدنه او د دې شي ماهیت په یقین سره درک کول ۲) تص. د لوی څښتن تعالی د ځینو صفتو د تجلیاتو شهود.

**عینکې** (ʕaynáke) ښځ. م. ج. سترګې، عینک، چشمې، چشمکې.

**عیني** (ʕayní) ص. نب. نر.م. ج ۱) په عین اړوند؛ ۲) سکه، سکنی؛ ۳) فل. مادي، په سترګو د لیدو وړ، آبجکتیف، آبژکتیف، آفاقي، د ذهني ضد.

**عینیت** (ʕaynyát) نر.م. ۱) په سترګو د لیدنې حالت، آفاقیت، د مادیت وصف؛ ۲) کټ مټ والی، یوراز توب؛ ۳) من. د عینیت او ذاتیت مبدا، د تفکر یو پرنسیپ دی.





# زاهد پښتو ـ پښتو سيند

## دريمه برخه

د افغانستان د علومو اکاډيمي
د پښتو څېړنو نړيوال مرکز

عبدالقيوم زاهد مشواني



خپرندوی دانش خپرندويه ټولنه

hedayatdarulelme.com،دارالكتب الإسلامية

# غ

غ (ğayn) نر.م. د پښتو الفبې دېرشم توری دی. د ابجد په حساب ۱۰۰۰ حسابېږي.

غاب (ğab) نر.م. (ج. غابونه) تينګری، تالی، نالبکی، قاب.

غابونی (ğabūnay) نر.م. ګندنې غوندې يو ډول ترخه وابنه دي چې شنه (آبي) ګلان کوي.

غاتر (ğatár) نر.م. ج. غاتره، کچره، قچر، قاطر.

غاټول (ğaṭôl) نر.م. ج. و ګ. ريدی.

غاټول وزمه (ğaṭōlwazmá) ښځ.م. غاټول غونی، د غاټول په رنګ، لاله رنګی.

غار (ğar) نر.م. (ج. غارونه) ۱) سوره، سوری؛ ۲) سمڅ، ګاره؛ ۳) غټ کانی.

غارمه (ğarmá) نر.م. د لمر تاو، د لمر ګرمي.

غارندونه (ğarandūna) ښځ.م. غاروزينه، يو ډول غنه ساراېي شرمښکی ده.

غاروزينه (ğarozīna) ښځ.م. و ګ. غارندونه.

غاری (ğaráy) ص. نر.م. ۱) ډېر خوری، ګېډور، خېټو؛ ۲) بد ژبی؛ ۳) نر.م. په غار کې استوګن.

غاری (ğaray) ص. ښځ.م. د غاری مونث؛ و ګ. غاری.

غاړبندی (ğaṛbánday) ص. نر.م ۱) بندی غاړی، هغه څوک چې د ګناه په وجه يې غاړه بنده وي؛ ۲) غاړبند، ګلوبند، هغه ځپوټی يا ورين تو کر چې تر غاړې يې تاووي.

غاړبوجن (ğaṛbojə́n) نر.م. يو ډول ناروغي ده چې د غوړو شاوې يا د پښو د ګوتو منځ زخمي کېږي او سوی کوي.

غاړبوجنېدل (ğaṛbojənedə́l) مص.ل. د غاړبوجن په ناروغي اخته کېدل.

غاړپټی (ğaṛpatáy) ښځ.م.ج. د غاړې دسمال، د غاړې پټی.

**غاړکی** (ğāṛakáy) ښځ. م. ۱) کتار وزمه، غاړه کی، گردنی، د کارتوسو کتار؛ ۲) امیل، هار.

**غاړگی** (ğāṛagáy) ښځ. م. اوړی، غاړه کی، هار، بندی، د روپیو نه جوړ شوی امیل.

**غاړو** (ğāṛú) ص. نر. م. د اوږدې غاړې ښتن.

**غاړه** (ğā́ṛa) ښځ. م. ۱) غرانګه؛ د زامې او تټر ترمنځ برخه؛ ۲) څنډه، ساحل؛ ۳) ګرېوان؛ ۵) والګی، زکام؛ ۶) توکه؛ ۷) سندره، غږ.

**غاړه اخستل** (ğāṛaaxistə́l) مص. ل. ۱) په زکام اخته کېدل؛ ۲) د زکام شدید کېدل.

**غاړه ایښوونه** (ğāṛaiṣōwaná) ښځ. م. تن ورکونه، ځانسپارنه، راضي، تسلیمي، تابع کېدنه.

**غاړه بندېدنه** (ğāṛabandedaná) ګنهکارېدنه، عاصي کېدنه، ماخوذ.

**غاړه بندي** (ğāṛabandí) ګناه، عصیان.

**غاړه زږغ** (ğāṛazə́ğ) نر. م. ۱) نغمه، غږ، سندره؛ ۲) د بلبل غږ یا اواز.

**غاړه غټی** (ğāṛağaṭáy) ښځ. م. ۱) غاړه غړی، سینه په سینه، غاړه په غاړه؛ ۲) غاړه غجي.

**غاړه غجي** (ğāṛağají) ښځ. م. و ګ. غاړه غټی.

**غاړه غړونه** (ğāṛağaṛawaná) ښځ. م. سر غړونه، سر غړاوی، نه منل، ځان ساتنه.

**غاړه غړی** (ğāṛağaṛáy) ښځ. م. و ګ. غاړه غټی.

**غاړه ګری** (ğāṛagə́ray) ص. نر. م. شفدار، پلوان شریک.

**غاړه وړونکی** (ğāṛawṛū́nkay) صف. نر. م. ۱) غاړه ایښوونکی؛ ۲) اهل، فرمانبردار.

**غاړیت** (ğāṛít) نر. م. چل، دوکه، تګي، غولونه.

**غاړې غاړې** (ğā́ṛeğāṛe) ق. خوله په خوله، تر خولې ډک، ډک، مالامال.

**غاړې غروند** (ğāṛeğrū́nd) نر. ج. سمه او غر.

**غاړې مورګې** (ğaṛemōrge) غاړې لمنې.

**غاز** (ğāz) نرم. (ج. غازونه) ګاز، بړاس، بخار، ګېس؛ ۱) د اجسامو له درېو ګونو حالتو (جامد، مایع، غاز) ځنګه یو حالت دی؛ ۲) د اوړو شیمه او پی؛ ۳) پنبه، کربوسکه، مالوچ.

**غازه** (ğāzá) ښځ. م. سرخي، سوروزمه، سرخي او سپېده چې ښځې یې پر مخونو د ښکلا لپاره کاروي.

**غازي** (ğāzí) نر. م. ۱) څوک چې د خدای په لاره کې جنګېږي؛ ۲) ډول وهونکی.

**غاښ** (ğāṣ) نر. م. وړه هډوکي چې د انسان و حیوان د خولې په پورتنۍ او کښتنۍ ژامه کې اوډل شوي وي او د هغو په وسیله ډوډۍ ژووله کېږي.

**غاښ ټومبونی** (ğāṣṭumbū́nay) نر. م. غاښکی، غاښونکی، غاښ ټنبونی، هغه آله چې د غاښونو منځ پرې پاکوي.

**غاښ چیچل** (ğāṣčičə́l) مص. مت. ۱) خوشکه کول، غضب و قهر کول؛ ۲) تهدېدول.

**غاښ چیچن** (ğāṣčičə́n) ص. نر. م. ۱) غاښ چیچک؛ ۲) خوشکتي، غوسه ناک.

**غاښ چیچی** (ğāṣčičáy) نر. م. ۱) ګواښېدنه؛ ۲) قهر، غاښ چیچنه، خوشکه.

**غاښخلی** (ğāṣxəlay) غاښتومبونی، د غاښ خلی، د غاښ تیلی.

**غاښ دوړه** (ğāṣdū́ṛa) غاښ چور، غاښ پوډر.

**غاښ ربخ** (ğāṣrabə́x) مسواک، د غاښو برش.

**غاښ سکوی** (ğāṣskóy) نر. م. د غاښو ترمنځ درز یا چاک، د غاښو وت.

**غاښک** (ğāṣák) ص. نر. م. غاښور، غاښو، داړو داړور، څوک چې لوی لوی غاښونه لري.

غاښو (ğāṣū́) ص. نب. غاښور.
غاښ موښی (ğāṣmū́ṣay) د غاښو پاکولو برس.
غاښ وتلی (ğāṣwatə́lay) ص.نر.م. ۱) کنداس؛ ۲) کرشپ، شپ خولی؛ ۳) مج. خوار، بدمرغه.
غاښور (ğāṣawə́r) ص. نر.م. ۱) وگ. غاښک؛ ۲) نر.م. گاښور، راکول؛ ۳) سکو، ښاخی.
غاښوره (ğāṣawə́ra) ښځ. م. ۱) غاښور، راکول؛ ۲) سکو، ښاخی، شاخی؛ ۳) گاښوره.
غاښ وله (ğāṣwə́la) ښځ. م. مجرومی، زبېره، رله، مجنون بېد، خرانگو، جرانگی.
غاښ ولی (ğāṣwaláy) ښځ. م. د غاښ وله، د غاښ بېخ، د غاښ ریښه.
غاښوونکی (ğāṣawū́nkay) وگ. غاښ تومبونی.
غاښی (ğā́ṣay) نر.م. ۱) کوتل؛ ۲) دړه، پراده، تیندړه، ترازه، قاش، تیندړ.
غاښی (ğāṣə́y) ښځ.م. ښاخی، شاخی، سکو.
غاښیز (ğāṣíz) ص. نر.م. ج. ۱) غاښور، داړو؛ ۲) غاښو، غاښ لرونکی؛ ۳) گر. هغه ږغ چې د ژبې په څوکې او غاښوسره تلفظ شي.
غاصب (ğāsíb) ص.نر.م (ج. غاصبان) غصبوونکی د چا مال یا ملکیت په زوره نیوونکی.
غافل (ğāfíl) ص. نر.م. ج. ۱) غفلت کوونکی؛ ۲) بې خبره؛ ۳) ناپوه؛ ٤) هېروونکی.
غافلول (ğāfílawə́l) مص. مت. ۱) په غفلت اخته کول؛ ۲) بې خبره ساتل؛ ۳) هېره باندې غالبول.
غافلېدل (ğāfíledə́l) مص. ل. ۱) په غفلت اخته کېدل؛ ۲) ناخبره کېدل.
غاکل (ğākə́l) مص. ل. وزه بغېدل، بغارې کول.
غال (ğāl) نر.م. په لوبه کې چل او چم کونگ.
غالب (ğālíb) ص.نر.م.ج. ۱) بر، بریالی، برلاسی؛ ۲) دېره برخه، زیاته ونډه؛ ۳) احتمال.

غالباً (ğālíbán) ق. ۱) زیاتره، اکثراً؛ ۲) په زیات احتمال.
غالبوزک (ğālbūzák) نر.م. یو ډول دښتي ختمي (خیروگل) دی چې سپین وسره گلان کوي.
غالبوزه (ğālbū́za) ښځ. م. (ج. غالبوزې) مچی، غومبسه، یوه نېښ او زهر لرونکې حشره ده.
غالبوزی (ğālbū́zay) نر.م. یو ډول خامک دی چې د توکر دواړو څنډو ته مساوي ډول د ستنې په وسیله سپرغې کېږي.
غالبول (ğalbū́l) نر.م. غال وغول، ځوږ، غالمغال، شور غوغا، غوغا.
غالبېدل (ğālıbedə́l) مص. ل. بریدل، کامیابه کېدل، بریالی کېدل، برلاسه کېدل.
غالوشه (ğālwā́sa) نر.م. لوغی، غوالوشه، دونی، یو لوښی دی چې غوا په کې لوشله کېږي.
غالی (ğāláy) ښځ. م. ج. غالینه، قالینه، قالین.
غالې (ğālé) ښځ. م. ناقې، غال، چم، چل؛ په لولو یا قمار کې څوک تېر ایستل.
غالی (ğāláy) ص. نر.م. ۱) غالې جن، دروهلی، چمباز؛ ۲) ور. غولی، انگړ، د وروستاړي په توگه دځینو کلیمو په پای کې راځي- لوبغالی.
غالېجن (ğālejə́n) ص.نر.م.ج. دروهلی، چمباز؛ هغه څوک چې په لوبو یا قمار کې غالې کوي.
غالیچه (ğāličá) ښځ. م. (ج. غالیچې) زلیچه، غالیگی، غالینچه، قالینچه.
غامبوری (ğāmbū́ray) نر.م. (ج. غامبوري) غومبوری، بغون، غمبوری، اننگی، باړخو.
غامض (ğāmíz) ص. نر.م. ج. ۱) پېچلی، مبهم شی؛ ۲) پټ، خوندي، لره ځمکه.
غانده (ğāndá) ص. نر.م. ۱) کرکجن، متنفر؛ ۲) غنده.

**غانډو** (ğāndū́) نر.ښځ.م. (ج. غانډوګان) ۱) بې همته؛ ۲) هغه څوک چې په زنګنو ځي.

**غاو** (ğāw) نر.م. ۱) شور، غالمغال؛ ۲) بد ګنل؛ ۳) مرستې ته څوک راغوښتنه.

**غاوچي** (ğāwčí) ص. نر.م. (ج. غاوچيان) دروازه وان، پهره دار، د دروازې ساتونکی.

**غاور** (ğāwír) ص.نر.م.ج. ۱) غور کوونکی، دقت کوونکی؛ ۲) برلاسی، بريالی؛ ۲) مغرور.

**غاورسی** (ğāwárasay) نر.م. ۱) نياوی، نياوېړی، غم خوړونکی، کومکي، مرستيال؛ ۲) د چا په شکايت باندې غور کوونکی.

**غاورسي** (ğāwarásí) ښځ. م. غم خوړونه، کومک مرسته.

**غاوليک** (ğāwlīk) نر.م. احتجاج ليک، اعتراض ليک.

**غاوناک** (ğāwnāk) نر.م. څوړ کوونکی، شور ماشور کوونکی.

**غاوول** (ğāwawə́l) مص.مت. ۱) ازارول، رېړول، په عذابول؛ ۲) د (غاوه) عمل کول.

**غاوه** (ğāwá) ښځ. م. غوه، مايه، ژغورګ، کوتی، تونی، ژورځای.

**غاوی** (ğāwáy) نر.م (ج. غاويان) فريادی، نياومن، دادخواه، مظلوم.

**غاوېدل** (ğāwedə́l) مص. ل. ازارېدل، دردېدل، په عذابېدل.

**غاب** (ğāyáb) نر.م.ج. ۱) الونيا، الاستي، نيهام، پنا؛ ۲) «ګر.» دريم شخص.

**غايبانه** (ğāyıbāná) ق. ۱) په غايبه توګه، په نيهامه؛ ۲) پسې شا، الونيا.

**غايبوالی** (ğāyıbwālay) نر.م. نيهاموالی، غايب، غايبېدنه.

**غايبېدل** (ğāyıbedə́l) مص. ل. نيهامېدل، پنا کېدل، ورکېدل، پټېدل.

**غايت** (ğāyát) نر.م. ۱) غايه، مقصود، هدف، مرام؛ ۲) آخر، پای.

**غايط** (ğāyít) جن. غايطه، غايطه مواد، د انسان فضله مواد، ډکې متيازې.

**غای لمې** (ğāyláme) ښځ.م. غولنې، غولونې، ګومنجک، ګومجکه، غولنکی، غولنه، کوچنی دانه چې معمولاً د سترګې پر څنډه راخېژي.

**غايوي** (ğāyawí) ص. نب. ۱) د غايې، نهايي په غايې اړوند؛ ۲) د هدف، په مقصود اړوند.

**غايه** (ğāyá) ښځ.م. (ج. غايې) وګ: غايت.

**غبار** (ğūbār) نر.م. ۱) خوپ، لړه، دربه؛ ۲) ګرد، دوړه؛ ۳) د سترګو يو ډول ناروغي ده؛ ٤) خ. غبار ليک؛ يو ډول ډېر کوچنی ليک دی.

**غبانده** (ğbānda) ښځ.م. (ج. غباندې) غلنګ، بغاونده، مغانده، قدکشک.

**غباندی** (ğbānday) نر.م. مرغړی، مرغېړی، د غوښو غده.

**غبرا** (ğabrā́) ص. ښځ. م. ۱) سپيره، خړ، هغه شی چې خاورې پرې پرتې وي؛ ۲) مج. ځمکه.

**غبرګ** (ğbárg) نر.م. ۱) جفت، جوړه؛ ۲) قت، غبرګلون.

**غبرګبواک** (ğbárgbəwāk) (ګر.) ترښتي بېواک، ترکيبي کنسونټ.

**غبرګپښېلی** (ğbárgpşelay) ګر. غبرګې پښېلې، غبرګې قافيې.

**غبرګ غونډله** (ğbárgğōndla) غبرګه جمله، دوه ملګرې جملې.

**غبرګلون** (ğbárglūn) نر.م. غبرګ، کت، قت، غبرګون.

**غبرگوالی** (ğbargwā́lay) نر.م. جوړه والی، جفتوالی.

**غبرگول** (اوَل ğbargawə́l) مص. مت. ۱) کټ کول، قاتول؛ ۲) جفتول، جوړه کول.

**غبرگولی** (ğbargólay) نر.م. جوزا، غبرگوني.

**غبرگون** (ğbargū́n) نر.م. ۱) عکس العمل، ردعمل؛ ۲) جوړه، جفت؛ ۳) غبرگوالی، دولایي؛ ٤) ځواب.

**غبرگونکړ** (ğbargūnkaṛ) گر. انعکاسي فعل.

**غبرگه** (ğbárga) ښځ.م. ۱) د غبرگ مؤنث شکل؛ ۲) هغه لنگه (ښځه یا مال) چې دوه بچي یې زیږولي وي؛ ۳) لپه، پیمانه.

**غبرگېدل** (اوَل ğbargedə́l) مص. ل. ۱) جوړه کېدل، کټېدل، قات کېدل، دوه کته کېدل.

**غبن** (ğában) نر.م. ۱) دروهنه، درغلنه، خیانت؛ ۲) فق. په پلورلو او پېرودلو کې زیان کول.

**غبي** (ğabí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) پخ، کُند ذهنه، څوک چې ژر زده کړه نه شي کولای؛ ۲) ناپوه.

**غپ** (ğap) نر.م. غو، غوغو، د سپي د غپېدو غږ.

**غپا** (ğapā́) ښځ.م. غپهار، د سپي د غپېدو غږ.

**غپل** (ğapə́l) مص. مت. غپ غپ کول، غپا کول.

**غپند** (ğápand) ص. نر.م.ج. غپنده، غپاندی، هغه سپی چې ډېر غپېږي.

**غپندوکی** (ğapandū́kay) نر.م. وگ. غپند.

**غپول** (اوَل ğapawə́l) مص.مت. ۱) سپی په غپا کول؛ ۲) مج. د چا له خولې اپلتې ایستل.

**غپه** (ğipá) ښځ.م. غوپه، غرق، ډوب، مغروق.

**غټ** (ğaṭ) ص. نر.ج. (ج. غټان) ۱) ستر، لوی؛ ۲) چاغ، شلند؛ ۳) د مقام له مخې لوی سړی.

**غټ باز** (ğáṭbāz) نر.م. ۱) لوی باز، زورور باز؛ ۲) ص. نر.م. (مج.) دوړن، باتو، لاپک.

**غټبازي** (ğaṭbāzí) ښځ.م. لاپې، باتې، دوړې.

**غټ پټ** (ğāṭpáṭ) ص. نر.م.ج. ۱) څورب، شلند؛ ۲) پیاوړی، زورور، قوي.

**غټټوب** (ğaṭṭób) نر.م. غټوالی، غټتیا، لویوالی، سترتوب.

**غټری** (ğaṭáray) نر.م. غټرکی، راغونداری شوی.

**غټ مازیگر** (ğáṭmazigár) ق. ولاړ مازیگر، لوړ مازیگر، د مازیگر اول وخت.

**غټ مشر** (ğáṭmášər) نر.م. د ولس لوی مشر، د قام رئیس؛ ۲) نایب سالار؛ ۳) د امیر شېرعلي خان د زمانې جرنیل.

**غټ نسی** (ğaṭnásay) ص.نر.م. ۱) گېډو، خېټو؛ ۲) د غټ او وتلي نس خاوند.

**غټو** (ğuṭū́) نر.م. اډی، مرغړی، مرغېړی، وړې او لوېې دانې دي چې په ستوني کې پیدا کېږي.

**غټوالی** (ğaṭwā́lay) نر.م. ۱) لویوالی، سترتوب؛ ۲) پېړوالی، پنډوالی؛ ۲) چاغښت، چاغوالی.

**غټوکی** (ğaṭū́kay) ص. نر.م. د غټ مصغر.

**غټول**(۱) (ğaṭól) نر.م.ج. غاټول، غانټول، لاله، ربدی، شندي گل.

**غټول**(۲) (ğaṭawə́l) مص.مت. ۱) لویول، سترول؛ ۲) عزت ورکول؛ ۳) د احترام وړ گڼل.

**غټوله** (ğaṭōlá) ص. نب. بې ډوله، بې تناسبه.

**غټه**(۱) (ğā́ṭa) ښځ. م. د شگو ډېری، د شگو کوټه.

**غټه غړنده** (ğā́ṭağaṛanda) ښځ.م. د سترگو کسی، نینک، د سترگو ککی.

**غټه کولمه** (ğā́ṭakulmá) ښځ.م. انډره، لویه کولمه، اورده کولمه، کټه کولمه.

**غټی** (ğaṭáy) نر.م. د منجمد شي ټوټه.

**غټی غټی** (ğaṭáyğaṭáy) ص. نر.م. ۱) گردی گردی، غونډ غونډ؛ ۲) ټوټه ټوټه، ذره ذره.

غتیالی (ğaṭyāláy) ص. نر.م. ځوانې ته نږدې شوی، ژنی شوی، ژنکی، زلموټی.

غتې دانې (ğáṭedāné) ښځ.م.ج. ننکې، لسوې دانې، دکوې دانې، دچیچک دانې.

غټېدل (ğaṭedál) مص. ل. ۱) لویېدل، سترېدل؛ ۲) چاغېدل؛ ۳) په عزت کېدل؛ ٤) د لوړ مقام خاوند کېدل؛ ۵) مج. متکبره کېدل.

غجره (ğajrá) ښځ.م. بډه، یو ښکلی غرنی بوټی دی چې زېړ ګلان کوي.

غجرۍ (ğajaráy) ښځ.م. ۱) یو ډول ښکلی انځور • شوی توکړدی چې د آس ترزین لاندې یې اچوي؛ ۲) قاجارۍ، د سرو زرو سکه وه.

غچ (ğač) نـر.م. ۱) کسات، انتقام، بدلـه، وار؛ ۲) د یو شي د پرېکولو یا بیاتي کولو اواز.

غچکه (ğačáka) ښځ.م. وګ. غیچکه.

غچول (ğačawál) مص. مت. بیاتي خرچول، په بیاتي غچ غچ کول.

غچېدل (ğačedál) مص. ل. ګرچېدل، خرچېدل، د بیاتي اواز وتل.

غځرکی (ğaǰərkay) نر.م. نوی زېږېدلی مرغومی، نوی زېږېدلی ورغومی.

غځول (ğaǰawál) مص. مت. ۱) اوږدول، پراخول، لویول؛ ۲) خبره اوږدول؛ ۳) مج. وژل.

غځونکي (ğaǰawúnki) ښځ.ج. غځـوونې، ستوماني ایستنه، کهالي ایستنه.

غځېدل (ğaǰedál) مص. ل. ۱) اوږدېدل، پراخېدل؛ ۲) خبره اوږدول، شملول.

غځ (ğac) نر.م. وګ: غچ.

غځکی (ğuckáy) نر.م. وګ. غوځکی.

غدار (ğadár) ص. نر.م. (ج. غداران) ۱) بې وفا، ژبه ماتوونکی؛ ۲) دروهلی، ښکار، محیل.

غدر (ğádər) نـر.م. ۱) خیـانت؛ ۲) بې وفـایي؛ ۳) مکر، فریب، حیله.

غدکه (ğadáka) ښځ.م. چینه، چین، چلمنه.

غدوی (ğaduy) نر.م. ۱) غـل، څوک چې په داګه غلا وکړي؛ ۲) د غل دکلیمې سره هم غدو راځي.

غده (ğudá) ښځ.م. (ج. غدې) مرغری، مرغـېری، غدود؛ د غوښو غوټه.

غدۍ (ğadáy) ښځ.م.ج. ۱) داره، چپاو، شبخون؛ ۲) بیړه، تلوار، عجله.

غذا (ğızá) ښځ.م. خواړه، دخوړو شی، ډوډۍ.

غر (ğar) نر.م. ۱) د ځمکې له سطحې څخه د ډبرو او خاورو راجګه شوې غونډۍ، موره؛ ۲) د سپي غرېدل؛ ۳) ص. نب. تلوار، بیړه، توندي.

غرا (ğarā) ص. نب. ۱) ځلاند، روښانه؛ ۲) نېک، شریف؛ ۳) مشر؛ ٤) غرهار، د موټر اواز.

غرابت (ğarābát) نر.م. ۱) لېرې والی، له هېواد څخه لېرې توب؛ ۲) د کلام پېچلتیا.

غراره (ğarāra) ښځ.م. ۱) خرجیګه، ځولۍ، هغه ځـولۍ چې د بار وړونکیـو په شـا بارېږي او د شیانو د وړلـو لپاره کار څني اخلي؛ ۲) مج. څیرې ویرې توکر.

غرامت (ğarāmát) نر.م (ج. غرامات) ۱) تاوان، هغه څه چې ادا یې لازمه وي؛ ۲) پور؛ ۳) ضرر، تاوان، نقص.

غران (ğırān) نر.م. قـران، ۱) نیمه پېړۍ د مخه د ۳۰ پیسو سکه وه؛ ۲) پنځوس پولۍ.

غرانده (ğrānda) ښځ.م. غورسکه، لوخره، د اور لمبه چې تور لوګی هم ورسره وي.

غراوو (ğarāwū) نر.م. ۱) د کوچنیانو د لوبو یوه آله ده؛ ۲) ص. نب. نر. ښځ.م. غـرتن، لاپـو، فضول.

**غرایب** (ğarāib) نسر. ج. ۱) لیمبری؛ ۲) نادر، حیرانوونکي او عجیب شیان؛ ۳) غرایب لیک.

**غرب**[1] (ğarb) نسر. م. لوېدیځ؛ لمر پرېواته، لمر لوېده، ختیځ ته مخامخ، د لمر لوېدو لوری.

**غرب**[2] (ğrab) نر. م. د ډول یا نغارې وهلو ږغ.

**غرباً** (ğárban) ق. د غرب خواته، د غرب پر لور، د لوېدیځ خواته.

**غربت** (ğurbát) نسر. م. ۱) پردیسي، مسافري، له وطنه لیرې توب ده ۲) خواري، غریبي.

**غربوړی** (ğarbūṛáy) نر. م. بولډوزر.

**غربول** (ğrabawál) مص. مت. د یوه شي وهل، د یو شي دربول یا ډبول.

**غربهار** (ğrabahár) نر. م. صوت. غربا، غربی، دربی، د ډول یا نغارې پر له پسې اواز.

**غربي** (ğarbí) ص. نب. نسر. ښځ. م. ج. لوېدیځ، د غرب، په غرب اړوند.

**غربی** (ğrabáy) نر. م. ۱) د وندني یا پتې په سر کې او سپنیزه کړه چې وندنی یا پتې پرې د پوندي ترشا راکلکوي؛ ۲) سگک، حلته، کړی.

**غربېدل** (ğrabedál) مص. ل. دربېدل، د ډول، نغارې یا بل شي له وهلو څخه اواز پورته کېدل.

**غربېړ** (ğarbéṛ) نر. م. غالمغال، شور، څوړ.

**غرپر** (ğárpár) نسر. م. غروپر؛ ۱) په گېډه کې د باد گړېر؛ ۲) مج. څوړ، شورماشور، غرپش.

**غرپرت** (ğárpárt) نر. م. چټي خبرې پرتې، باتې.

**غرپش** (ğarpáš) نر. م. و گ؛ غرپر.

**غرتک** (ğarták) نسر. م. ۱) غرتې کوونکی، چټي غږېدونکی؛ ۲) گوزاوې، تیزن، غرتن.

**غرته** (ğárta) ښځ. م. ۱) غره، کونه، سغی، مقعد؛ ۲) مج. چټي خبره، بې ځایه خبره.

**غرتې** (ğárte) ښځ. ج. اپلتې، چټي خبرې.

**غرتی** (ğartáy) نسر. م. کندوکی، د قند و نورو شیانو غتی (غونډاری).

**غرچ** (ğrač) نر. م. کرچ، خرچ، د غاښونو د چیچلو اواز.

**غرچی** (ğarčáy) نر. م. صوت. خرچی، کرچی، د زلزلې په وخت کې د کوټې د لرگیو اواز.

**غرچېدل** (ğračedál) مص. ل ۱) کرچېدل، خرچېدل، د زلزلې په وخت کې د کوټې د لرگیو اواز؛ ۲) د مستې څخه غورځېدل.

**غرڅپه** (ğarcapá) ښځ. م. ۱) د غره لوی نهر؛ ۲) ستره څپه، د سمندر غټه څپه.

**غرڅن** (ğarcán) نر. م. ج. غرنی، غریز، د غره روهي.

**غرڅنی** (ğarcanáy) نر. م ۱) غرنی؛ ۲) غرنی حیوان؛ ۳) د غرني وز یا وزې بېدی؛ ٤) غرنی وز.

**غرڅه** (ğarcá) نسر. م. ښځ. م. غرنی وزه یا پسه، د غره بزه یا سېرلی، غرنی پسه او غرنی بزه.

**غرڅه گل** (ğarcagwál) نر. م. یو غرنی بوټی دی.

**غرډپ** (ğardáp) نر. م. دپ، لاپې، شاپې، باتې.

**غرز** (ğraz) نسر. م. د دېوال د غورځېدلو اواز.

**غرزول** (ğrazawál) مص. مت. ۱) وهل، تکول؛ ۲) ډول یا نغاره وهل؛ ۳) گرېول.

**غرزی**[1] (ğrazáy) ص. نرم. دربی، گرېی، د توپک، توپ... اواز.

**غرزی**[2] (ğarzáy) نر. م. روهي، د غره اوسېدونکی، څوک چې په غره کې اوسي یا زېږېدلی وي.

**غرزېدل** (ğrazedál) مص. ل. ۱) وهل کېدل؛ ۲) گرېېدل؛ ۳) د ډول، نغارې غږ وتل.

**غرړل** (ğarẓal) مص. ل. د سپي سخت غپل.

**غرړی** (ğarẓay) نر. م. د قهر و غضب په وخت کې د سپي غوربدنه.

**غرشین** (ğaršín) نسر. م. غروال، روهي، د غره اوسېدونکی، د غره.

غرض (ğaráz) نر.م. ۱) هیله، حاجت؛ ۲) هدف، مراد؛ ۳) پټه غوښتنه چې د ګټې په نیت وي؛ ۴) د بل په ضرر قصد؛ ۵) بلوسه، تېری.

غرضمن (ğarazmán) ص. نر.م. ج. غرضي، د غرض خاوند، خود غرضه.

غرغچ (ğarğǎč) نر.م. ګرګیچې، غرغچې وهل، د غره، سرونه ځنګول، سرونه سره وهل.

غرغر (ğárğár) صوت. نر.م. ۱) دالوتکې، موټر پرله پسې اواز؛ ۲) د قهر له امله تر شونډو لاندې خبرې کول.

غرغرانک (ğərğərānák) نر.م. ګرګرانکه، د کوچنیانو د لوبو یوه آله ده.

غرغرک (ğarğarák) نر.م. د جرثقیل غرغره، د څاه فلزي څرخ.

غرغره (ğarğará) ښځ.م. ۱) د خولې له خوا د مری سر؛ ۲) دار، سولی، غرغره، په دار کېدنه.

غرغړ (ğarğaṛ) نر.م. غرغر، کړاک، کړاو، سختي.

غرغړوبی (ğarğaṛobay) نر.م. ۱) کانی؛ د سیند ښوی کانی؛ ۲) یوه لوبه ده.

غرغړه (ğarğaṛa) ښځ.م. ۱) په خوله اوبه رغړول؛ ۲) غړندوکی؛ ۳) د لمر د پرېوتلو وروستی شېبه؛ ۴) دار، پانسي؛ ۵) داوبو تالوو هنه.

غرغړه يي (ğargaṛáyi) نارام، ډانګه يي، ماجراجو.

غرغړی (ğarğaṛáy) ښځ.م. له ستوني او مری څخه راوتلی اواز.

غرغشت (ğarğušt) نر.م ۱) شور، ځوږ؛ ۲) منډې، توپونه؛ ۳) دنجونو یوه لوبه ده.

غرغښت (gárğǝ́st) نر.م. د پښتنو یو ستر نیکه دی. د پښتنو له څلورو سترو قبیلو څخه یوه قبیله ده.

غرغښتی (ğarğəṣtáy) نر.م. ۱) یو ډول آلو؛ ۲) غرنی تریخ بادام، غوزېښتی.

غرغنډه (ğarğandá) ښځ.م. غرانډ، غړوسکه، د اور سترګه لمبه چې لوګی ورسره مل وي.

غرغور (ğarğúr) نر.م. ۱) غرغر، ځوږ، شور ماشور؛ ۲) د تالندې او برېښنا اواز.

غرغېچکو (ğarğečkó) نر.م. د سونګ یو ډول لرګی دی.

غرفه (ğurfá) ښځ.م. ۱) کړکۍ؛ ۲) بالاخانه؛ ۳) د لرګو یا فلزو وړوکې کوټه یا دوکان.

غرق (ğarq) ص. نر.م. ج. ۱) ډوب، غوپه، په اوبو کې لاهو؛ ۲) مج. برباد؛ ۳) مج. منهمک.

غرقاب (ğarqāb) نر.م. ګردابی، په اوبو کې ژور ځای.

غرقول (ğarqawə́l) مص.مت. ۱) ډوبول، غوپول؛ ۲) بربادول، پوپنا کول.

غرقېدل (ğarqedə́l) مص.ل. ۱) ډوبېدل، غوپېدل، ورکېدل؛ ۲) بربادېدل.

غرکمانه (ğurkamā́na) ښځ.م. یو ډول لینده ده.

غرکنو (ğarkanū́) نر.م. چولايي، چلوايي غونډې یو ډول سابه دي.

غرکی (ğərkáy) نر.م. ۱) د مستۍ په وخت کې د غوايي اواز؛ ۲) بې ځایه خبرې؛ ۴) دخلکو ډېره زیاته ګنه ګونه.

غرګرځی (ğargárǰay) نر.م. غرګرځېدونکی، غر ختونکی.

غرګرځېدنه (ğargarǰedaná) ښځ.م. غرختنه.

غرګی (ğərgáy) نر.م. ۱) غونډاری؛ ۲) ګرده او ښوی غټ کانی؛ ۳) هغه تیره چې په لاس کې ځایېدای او غورځول کېدای شي؛ ۴) غرګوټی، د غره مصغر، وړوکی غر.

**غرلړی** (ğarlaṛáy) نر.م. د غرو لړی یا سلسله.

**غرمچ** (ğarmáč) نـر.م. ۱) د ګلانو په منځ کې یو چکر؛ ۲) تور وانجه.

**غرمکی** (ğarmakáy) ښځ.م. غرمه کی، تنکۍ غرمه، تنکی برېځر، کچه غرمه.

**غرمنی** (ğarmanáy) ښځ.م.ج. د غـرمې ډوډۍ، غرمنی مېلمستیا.

**غرمنی** (ğarmanáy) ص. نر.م. د غرمې، په غرمه اړوند- غرمنی ننګولی.

**غرمه** (ğarmá) ښځ.م. نیمه ورځ، برېځر- د ورځې هغه وخت چې لمر پر سر وي؛ ۲) مج. ګرمي.

**غرمېشتی** (ğarméštay) نر.م. غرشین، د غره اوسېدونکی، غرنی سړی.

**غرنجالی** (ğranjāláy) ښځ.م. یو ډول خزنده ده چې د اینځر په ونه کې ډېره پیدا کېږي او غټ غټ ښکرونه یا حسي آلې لري.

**غرند** (ğaránd) ص.نر.م.ج. غرنده، غرتک، څوک چې زیاتې خو بېځایه خبرې کوي.

**غرنداز** (ğarandāz) نر.م.ج. و ګ. غرند.

**غرنده**[1] (ğránda) ښځ.م. غرندی، ترزنې لاندې د غاړې بهرنی برخه، د مرۍ غوټه.

**غرنده**[2] (ğarānda) ښځ.م. ۱) غم، ویر؛ ۲) تنګسه، سختي، سخته، لاچاري، تنګسیه.

**غرنګ** (ğráng) نر.م. د اوسپنې یا د بل کلک شي د غورځېدلو اواز.

**غرنی** (ğaranáy) ص. نر.م. روهي، د غره، غروال، غریځی، غریچی، غره ته منسوب، غریز.

**غرواښه** (ğarwāṣá) نر.م. یو ډول غرنی واښه دي.

**غروال** (ğarwāl) ص. نر.م. و ګ. غرنی.

**غرور** (ğurūr) نر.م. ۱) کبر، لویي؛ ۲) مرغـوړنه، بې پروایي؛ ۳) چتې شي ته تمه لرنه.

**غروړی** (ğrūṛay) نر.م. غروړه؛ ۱) د بدن د پوستکي لاندې پړسوب؛ ۲) کینه، رخه، بغض، عداوت، دښمني.

**غروړی غروړی** (ğrūṛayğrūṛay) ص. نـر.م. پړسېدلی، ځای پر ځای غوټې غوټې.

**غروسمه** (ğārōsáma) ښځ.م. غر ودښته، لوړه او ژوره، غر و اواره، غروسم.

**غروښت** (ğarwāṣt) نـر.م. یو ډول ښځ لـرونکی غرنی بوټی دی.

**غرول**[1] (ğarawál) مص. مت. ۱) سره ښورول، په شور راوستل؛ ۲) څوک په اپلاتو راوستل.

**غـرول**[2] (ğrawál) مص. مت. د واده د مراسمو پر وخت زوم په پالنګ یا تخت کښېنول.

**غروی** (ğráway) نر.م. ۱) و ګ. ورغوی؛ ۲) د اوبو غروه، د اوبو سیمساره.

**غروېښته** (ğorwéṣta) ښځ.م. غـومبک، منځ غوندې یو پوست نبات دی چې د فرش په توګه کار ترې اخلي.

**غره**[1] (ğurá) ښځ.م. (ج. غـرې) د قمري میاشتې لومړۍ ورځ یا شپه.

**غره**[2] (ğará) ص.نب ۱) مغرور؛ ۲) ښځ.م. مقعد؛ ۲) د اتڼ په پیل کې لوړ آواز ونه.

**غـرهار** (ğarahār) صـوت. نـر.م. ۱) د الوتکې، موټر او... اواز؛ ۲) چتې او بې ځایه خبرې.

**غری** (ğaŕay) نر.م. و ګ. غرنده[1].

**غری** (ğaráy) ښځ.م. د بخار داني، لړمې، لړمکۍ، لم لتکه، لړمۍ، د لړمو ناروغي.

**غریاسی** (ğaryasáy) نر.م. د تنۍ غوړاشه، کاج، هغه سوری چې په کالیو کې جوړېږي.

**غرېب** (ğreb) نـر.م. سـونګټ، سونکه، غرېو، په مرۍ کې ژړا، د مایوسۍ ژړا.

**غريب** (ğarib) ص. نر.م. ج. (غريبان) ۱) بېوزله، بېچاره؛ ۲) عجيب؛ ۳) يوازې.

**غريبانه** (ğaribāná) ق. عاجزانه، د بېوزلۍ، د غريبۍ، د خوارۍ.

**غريب خانه** (ğaribxāná) ښځ. م. مرستون، د بېوزلو او خوارانو د اوسېدو ځای.

**غريب كار** (ğaribkār) ص. نر. م. ج. خواري كښ، هغه څوک چې كار، غريبي او مزدوري كوي.

**غريب گوټی** (ğaribgóṭay) ص. نر. م. خوارکی، بېچاره گی، د غريب مصغر.

**غريبه** (ğaribá) ښځ. م. يو ډول بې اغزو ونه ده چې وړې وړې پاڼې لري او وړې وړې داڼې كوي.

**غريبي** (ğaribí) ښځ. م. ۱) بېوزلي، خواري، نېستي؛ ۲) خواري گالنه، زيار ايستنه.

**غرېچی** (ğarečáy) ص. نر. م. و گ. غرنی.

**غرېڅی** (garecáy) ص. نر. م. و گ. غرنی.

**غرېدل** (ğaredál) مص. ل. ۱) په شور راتلل؛ ۲) يو څوک په اپلاتو راتلل؛ ۳) د يوه شي د غرهاري اواز وتل.

**غريز** (ğaríz) نر. م ۱) صبر، زغم، تحمل؛ ۲) ص. نر. م. ج. غرنی، د غره، غرېچی، غرېڅی.

**غريزه** (ğarizá) ښځ. م. (ج. غريزې) ۱) فطرت، ختيه، اصل؛ ۲) بيا. طبيعي شوق، د ټاكلو چارو د سرته رسولو فطري استعداد.

**غريزي** (ğarizí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. جبلي، طبيعي، فطري، ذاتي، په غريزې اړوند.

**غرېو** (ğrew) نر. م. ۱) و گ. غرهب؛ ۲) صوت. نر. م. غرېده، غړومبېده، د وحشي حيواناتو د قهر اواز.

**غري وري** (ğáriwári) ق. ۱) ژور ژور؛ ۲) ځيرې ځيرې، ځيرې پيرې، كندې وندې.

**غرېوناک** (ğrewnāk) نر. م. ج. غرېوجن، غرېو نيولی، له غرېوه ډک، غرهب نيولی.

**غړ** (gar) صوت. نر. م. اوق، هوق، دكانګې غږ.

**غړاسپی** (giṛāspay) نر. م. غړسپی، لوړ ځای دی چې كوچيان يې د خپلو شيانو د ايښودلو لپاره جوړوي.

**غړاسكی** (ğṛāskay) نر. م. ۱) تير، بړی، بروړ؛ ۲) وېښه، شاتير.

**غړاشه** (ğuṛāšá) ښځ. م. غوړاشه، غوړيشه، گنده.

**غړاندو** (gaṛāndú) ص. نر. م. ج. غړانگور، اوږد ختی، اوږد غاړی.

**غړانگاو** (gaṛāngáw) نر. م. غړانگوه، يو بوټی دی چې په كلكه ځمكه كې شين كېږي.

**غړانگو** (ğaṛāngú) ص. نر. م. غړانگور، د بد اواز خاوند، د زړه بدوونكي ږغ ښبنتن.

**غړانگور** (ğaṛāngawár) نر. م. و گ. غړاندو.

**غړانگه** (ğaṛānga) ښځ. م (ج. غړانگې) ۱) اوږده غاړه؛ ۲) اوږده چيغه؛ ۳) شور ځوږ.

**غړانگي** (ğaṛāngí) ص. نر. م. ۱) اوږد غاړی؛ ۲) بد آوازه، د بد آواز ښبنتن، اوږد غاړی كدو، اوږد كدو.

**غړانگی** (ğaṛāngóy) ښځ. م ۱) صراحي، تونگ؛ ۲) ص. ښځ. م. د غړانگی مؤنث.

**غړب** (ğṛab) نر. م. ۱) پرتم، شان و شوكت؛ ۲) ص. نرم. درب، گړب، د يوه شي د لوېدو اواز.

**غړبوجن** (ğaṛbōján) نر. م. و گ. غاړبوجن.

**غړپ** (ğṛáp) نر. م. ۱) پرتم، اوكوب؛ ۲) غوړپ، گوټ، په يوه ځل د مايعاتو ښبنل.

**غړپړ** (ğaṛpár) نر. م. ۱) د قهر او غوسې غږ، سخته كړيكه؛ ۲) عرض، شكايت.

**غړپل** (ğṛapál) مص. مت. و گ. غوړپل.

**غړپول** (ğṛapawә́l) مص. مت. ګوټل، غـړپـل، غوړپول، په يوه ځل د مايعاتو څښل.

**غړپېدل** (ğṛapedә́l) مص. ل. ۱) غوړپېدل، اينده کېدل، په يوه ځل يا غړپ د مايعاتو څښل کېدل؛ ۲) جړپېدل، مايعات سره بنوربېدل.

**غړت** (ğṛat) صوت. نر. م. غړچ، غـړچی، د ستوني نه د مړي د تېرېدو اواز.

**غړچ** (ğṛač) صوت. نر. م. و ګ. غړت.

**غړچول** (ğṛәčawә́l) مص. مت. ۱) نغرول، اپول، مړي تېرول: ۲) کړچول، غچول، کرچول.

**غړچی** (ğṛәčә́y) صوت. نر. م. و ګ. غړت.

**غړچېدل** (ğṛәčedә́l) مص. ل. ۱) تېرېدل، په يوه ځل لـه مـړي تېرېدل؛ ۲) کـړچېدل، غچېدل؛ ۳) د غړچ اواز ويستل.

**غړڅکی** (ğṛәckáy) نر. م. ۱) بخـری، بخـرکی؛ ۲) تورتنی، خځله؛ ۲) د تالندي اواز.

**غړدی** (ğṛadáy) نـر. م. ۱) نغـړلی، نغښتی، تـاو شوی؛ ۲) جذب شوی.

**غړز** (ğṛaz) صوت. نـر. م. (ج. غړزونه) ګـرز، درز، غرز؛ د يوه شي د لوېدلو يا غورځېدلو اواز.

**غړزا** (ğṛazá) صوت. ښځ. م. ګرزا، درزا، غـرزا، د يوه شي د لوېدلو يا غورځېدلو اوازونه.

**غړسپی** (ğṛáspay) نر. م. و ک. غراسپی.

**غړغړ** (ğarğár) نر. م. و ګ. غرغر.

**غړغړه** (ğarğará) ښځ. م. و ګ. غرغره.

**غړک** (ğṛak) نر. م. کينه، بغض، حسد، رخه.

**غړک** (ğaṛák) نر. م. و ګ. غړکه.

**غړکه** (ğṛáka) ښځ. م. ژی. غړک، مشک.

**غړل** (ğaṛә́l) مص. مت. نغښتل، غښتل، تاوول.

**غړم** (ğṛam) صوت. نر. م. غړوم، ګـړم، غـړومب، د توپ و تپوپک د ډز اواز.

**غړمباری** (ğrambā́ray) نر. م. غړمبهار، غړمبهاری د توپونو او نورو لويو وسلو د ډزو اوازونه.

**غړمبل** (ğṛambә́l) مص. ل. غړمبېدل، غوړېدل.

**غړمبو** (ğṛambū́) ښځ. م. ۱) غوړند، شورکوونکی؛ ۲) ډينجو، چړتونه، جـړتېنه، د لويو په ډول يو اوبل ته د وياړلي او به شيندنه.

**غړمبول** (ğṛambawә́l) مص. مت. غړومبول، زمری په غړمباري کول.

**غړمبی** (ğṛambáy) ص. نر. م. د زمري يا پړانګ د غړمبېدو اواز؛ د توپ د ډز اواز.

**غړمبېدل** (ğṛambedә́l) مص. ل. ۱) غـړنبېدل، غړېدل، زمری غورېدل؛ ۲) اسمان غرېدل.

**غړن** (ğáṛәn) ص. نر. م. ۱) غړند، مړاوی، شيته؛ ۲) کمزوری، خوار.

**غړنجهار** (ğṛanjahā́r) ص. نر. م. غړنجاری، کړنجا.

**غړند** (ğáṛәnd) ص. نر. م. ج. غړن، مړاوی، شيته، کمزوری، سست.

**غړندتوب** (ğәṛandtób) نر. م. غړنتيا، غړندوالی، مړاوی والی، مړاوی کېدنه، شيته کېدنه.

**غړندول** (ğaṛandawә́l) مص. مت. ۱) مړاوي کول، شيته کول؛ ۲) کمزوری کول، سستول.

**غړنده** (ğáṛәnda) ص. نب. نـر. ښځ. م. ۱) د غړند مؤنث، مـړاوې، شـيته، کـمـزوری، سـسـته؛ ۲) ګوبنه.

**غړندی** (ğaṛandáy) ص. نر. م. دروند سترګی، د بد نظر خاوند، بد نظری، نظر باز.

**غړندېدل** (ğaṛandedә́l) مص. ل. ۱) مړاوی کېدل، شيته کېدل؛ ۲) کمزوری کېدل.

**غړنګ**[1] (gaṛáng) نر. م. و ګ. غړنه.

**غړنګ**[2] (ğṛang) نر. م. صوت. دغړکي د شاربلو اواز.

**غړنګو** (grangū̆ġ) ښځ. م. يو غرنى بوټى دى چې ايره يې دغړکې د رنګولو لپاره کاروي.

**غړنګه** (ğaranga) ښځ.م. و ګ. غرانګه.

**غړنګهار** (ğrangahār) صوت. نر.م. غرنګا، دغړکې د شاربلو او مبنلو پرله پسې اواز.

**غړنګې** (ğrangáy) ښځ.م. غرياکه، د غوښو غوټې چې د پسونو او وزو په غاړه کې وي.

**غړنه** (ğarána) ښځ.م. غرنګ، غښتنه، تاوونه.

**غړواندى** (ğarwānday) نر.م. و ګ. غړوندى.

**غړوسکه** (ğrūska) ښځ.م. ۱) ګڼ و تريخ لوګى؛ خروسکه؛ ۲) هرشی په تيره بيا کښت چې ډير ګڼ و غونډ وي.

**غړوسکى** (ğrūskáy) نر.م. تيتکى، لومه، هغه دام چې د آس د لکۍ له ويښتانو وي.

**غړوښتى** (ğarwaštáy) نر.م. غروښتى، ورښتى، د غرنى تريخ بادام ونه.

**غړوکى** (ğarūkay) نر.م. وړه غړکه، ورکوټى ګوډى، کوچنى مشک يا ژى.

**غړول** (ğarawál) مص. مت. ۱) دسترګو ګاټې هاخوا دېخوا ښورول؛ ۲) سترګې خلاصول يا لوڅول؛ ۳) کمزورې ساه اخيستل.

**غړومب** (ğrūmb) صوت. نر.م. و ګ. غرم.

**غړومبل** (ğrūmbál) مص. ل. ۱) غړومب کول؛ ۲) په خوراک کې بې نزاکتى کول.

**غړومبنه** (ğrūmbána) ښځ.م. غړمبنه، غرم کول.

**غړومبول** (ğrūmbawál) مص. مت. غرمبول، په غورا راوستل، په غرم راوستل.

**غړومبهار** (ğrūmbahār) ص. نر.م. غړومبى، غرمبى، د توپ، تالندې اوازونه.

**غړومبى** (ğrūmbáy) صوت. ۱) و ګ. غړومبهار؛ ۲) نر.م. خاخوږى، تندوره، خرخاو، زخمه.

**غړومبېدل** (ğrūmbedál) مص.ل. ۱) غړمبېدل، غورېدل، غړمبى کول؛ ۲) په قهر کېدل.

**غړوندى**[1] (ğarwanday) نر.م ۱) غړواندى، کولند، مورچتى پړى، دڅاروي دغاړې بند؛ ۲) ورغندى، جزم، سکون.

**غړوندى**[2] (ğrūnday) نر.م. د بوتل غاړه.

**غړونکى** (ğrūnkay) فا. نر.م. غښتونکى، تاوونکى، څوک چې پړى يا مزى غړي.

**غړونه** (ğarawána) ښځ.م ۱) د سترګو خلاصونه؛ ۲) دسترګو ګاټې ښورونه.

**غړوونى** (ğarawūnay) نر.م. کنګالى، غړونى، کنګالوونى، هغه لوښى چې نور شيان پکې کنګالېږي.

**غړى** (ğáray) نر.م (ج. غړي) ۱) عضله، ماهيچه؛ ۲) ويشلې، اوخولې، يو راز غوره ډوډۍ ده؛ ۳) ص. عضو، فرد، کس؛ ٤) اندام.

**غړۍ** (ğaráy) ښځ.م. ۱) غاړه، ورمېږ، د کوزې او ګړې غاړه؛ ۲) دغاړې کړۍ.

**غړياکه** (ğaryāka) ښځ.م. و ګ. غرنګې.

**غړيت** (ğrit) نر.م. چل، چم، دروهنه، دوکه.

**غړيتاو** (ğaritāw) نر.م. جولان، آس ګرځول و ځغلول، د آس تاخت و تاز.

**غړيتوبونډه** (ğritōbwanda) ښځ.م. د غړيتوب ونډه، حق العضويت.

**غړېدل** (ğaredál) مص.ل. ۱) سترګې بېرته کېدل؛ ۲) دسترګو ګاټې ښورېدل؛ ۳) په سترګو کې ګرځېدل؛ ٤) ځان په ځنګول.

**غړيک** (ğarek) نر.م. ۱) غوراشه، د تنۍ سورى؛ ۲) سګک، غربى؛ ۲) د لور غاړه.

**غړيکور** (ğrikawár) ص. نر.م. ج. هغه پسه چې دوه مرغړې يې د ستونى لاندې ځوړند وي.

**غز** (ğaz) نر. م. يو ډول ونه ده، پاڼي يې د نښتر په څېر دي. په تودو سيمو کې زرغونېږي.

**غزا** (ğazá) ښځ. م. (ج. غزاګانې) جهاد، د دين له دښمن سره جګړه.

**غزال** (ğazál) نر. م ۱) کبلی، دهوسۍ بچی؛ ۲) مج. معشوقه، معشوق؛ ۳) المر: ٤) دلمر وړانګې.

**غزاوشوه** (ğazawáśwa) مج. يوه ګړنه (اصطلاح) ده چې د (دا يو شوق دی، دا يو تش هوس دی، آنوخه، په دې نوخه) ماناګانې لري.

**غزل** (ğazál) نر. م. ښځ. م. غزله؛ ۱) بدل، بدله، هر شعر چې په وزم سره وويل شي؛ ۲) يو موسيقيز طرز دی؛ ۳) نر. م. د وړيو يا وېښتانو ورېشنه.

**غزلبن** (ğazalban) شاعرانه، د غزل بڼ.

**غزلبول** (ğazalbol) د غزل شاعر، د غزل سندرغاړی.

**غزلچي** (ğazalci) ص. نب. نر. ښځ. م. غزل ويونکی، څوک چې غزل وايي.

**غزلنی** (ğazlanáy) نر. م. د غز دانې، د غز ګل.

**غزلون** (ğazlún) جن. بری، بور، اينسر، د غز، نښتر، سرپ او... له ونو څخه راتويه شوې مېده ګی.

**غزول** (ğazawál) مص. مت. و ګ. غځول.

**غزووني** (ğazawúni) ښځ. ج. غځوونکي؛ ۱) غزوونکي، غزونې، کهالي او ستوماني ايستنه؛ ۲) تحرک، خوځښت، بېداري.

**غزی** (ğázay) نر. م. (ج. غزي) يوه تور بخنه کوچنۍ مرغۍ ده، خېټه يې سپينه او پښې يې اوږدې دي، د اوبو پر غاړو ګرځي.

**غزېدل** (ğazedál) مص. ل. و ګ. غځېدل.

**غژغويی** (ğaẑğwayáy) نر. م. غوړغويی، غژګاو، غژګی، د غوايانو يو نسل دی.

**غژکه** (ğaẑáka) ښځ. م. و ګ. غيچکه.

**غژه** (ğuẑá) ښځ. م. د باړې پوله، د پټي پوله.

**غږ** (ğaẓ) نر. م. يږغ، ۱) اواز، صوت، هغه څه چې اورېدل کېږي ۲) ناره، ست، خوښول، پره.

**غږپوه** (ğaẓpóh) د غږپوهې يا فونولوجي ماهر.

**غږ پوهه** (ğaẓpóha) ښځ. م. غږپوهنه، فقه الصوت، سپړپوهه، فونيتيکس، فونولوجي.

**غږ جګی** (ğaẓjágay) نر. م. غږلوړی، غږ جګوونکې آله، لاسپيکر، لوډسپيکر.

**غږل** (ğaẓál) مص. مت. اورېدل، نغوړل، اورېدل.

**غږمار** (ğaẓmắr) ص. نر. م. ۱) د لوړ او جګ اواز خاوند؛ ۲) يږغ کوونکی، غږ کوونکی.

**غږ نښه** (ğaẓnáṣa) ښځ. م. (تن.) د غږ نخښه، د ندا علامه، ندائيه؛ يوه نښه ده چې شکل يې داسې دی «!» او د هيلې، امر، وېرې، شفقت، تحسين، تحذير، قسم، طعنه، تاکيد، استمداد، ندا او حيرانتيا د څرګندولو لپاره استعمالېږي.

**غږنيوی** (ğaẓniway) غږنيوونی، د غږ ثبتولو آله.

**غږوغوږ** (ğaẓoğuẓ) شارت و شورت، هارت و هورت، سر و صدا.

**غږول** (ğaẓawál) مص. مت. يږغول؛ ۱) ترنګول، ډنګول، له يوه شي اواز ايستل؛ ۲) په خبرو راوستل، د چا تر خولې خبره ايستل.

**غږېدا** (ğaẓedá) ښځ. م. خبرې، وينا، ګړا.

**غږېدل** (ğaẓedál) مص. ل. ګړېدل، خبرې کول.

**غږيز** (ğaẓíz) ص. نر. م. ج. د غږ، اواز ورکوونکی، غږوالا، يږغن، غږن.

**غږيزمزي** (ğaẓizmázi) نر. ج. و ګ. يږغيز مزي.

**غسل** (ğusál) نر. م. (ج. غسلونه) ۱) ځان پرېولل؛ ۲) له شرعي اصولو سره سم له جنابت څخه د پاکېدنو لپاره د بدن مينځل.

**غسلخانه** (ğusalxāná) ښځ. م. چرچوبی، چمچوبی، تشناب، د لمبلو ځای.

**غسه** (ğäsa) ښځ.م. گورگتې، گورگښه، گورکښ، بغسه، يو حيوان دی چې پړ ته ورته دی.

**غش**[1] (ğïš) نر.م. ۱) خيانت؛ ۲) رخه، حسادت، کينه؛ ۳) غولونه، دروهنه، چل.

**غش**[2] (ğaš) نر.م. و گ. صرع.

**غشا** (ğišá) ښځ.م. پرده، پوښ، هر هغه څه چې يو شی وپوښي.

**غشک** (ğašk) نر.م. ۱) خطر، خطره؛ ۲) فتنه، پسات.

**غشلړه** (ğašlaṛá) ښځ.م. ۱) له خوشايانو سره خته گډول؛ ۲) مج. فتنه، د فتنې چاره.

**غشوی** (ğašóy) جن. خوی، زاړه وچ خوشايي چې د خوپه څېر اور اخلي.

**غشی** (ğášay) نر.م (ج. غشي) غيشی؛ ۱) توبری، تير؛ ۲) غېسی، د کوندي يو لرگی چې له جغ سره تړل کېږي.

**غښتل** (ğaṣtál) مص. مت. غړل، تاوول، د پړي يا مزي تاوول.

**غښتلتوب** (ğaṣtaltób) نر.م غښتلوالی، پياوړتيا، غښتلتيا، قوي توب.

**غښتلی** (ğaṣtálay) ص.نر.م. ۱) پياوړی، تکړه، قوي؛ ۲) گړندی، چټک؛ ۳) مف. نر.م. غړلی، تاو شوی، تاو کړی شوی.

**غښتلی نومځری** (ğaṣtálaynūmǰaray) (گر.) زورنومځری، منفصل ضمير.

**غښته** (ğáṣta) ښځ.م. ۱) د ښځو د تندي د ويښتانو يو ډول جوړونه؛ ۲) کينه، رخه؛ ۲) توطيه.

**غښتی** (ğáṣtay) ص.نر.م. غړلی، تاو شوی، تاو، تاو کړی.

**غصب** (ğasb) نر.م. لاندې کول، په زور سره د يو چا مال يا څمکه نيونه.

**غصبول** (ğasbawál) مص. مت. لاندې کول، په زور سره د يو چا مال يا ځمکه نيول.

**غصه** (ğusá) ښځ.م. (ج. غصې) غوسه، ۱) قهر، خوشکه؛ ۲) غم، خپگان؛ ۳) هر هغه څه چې په مری کې ونښلي او کښته نه ځي.

**غصه ناک** (ğusanák) ص. نر.م. خوشکتي، توغمه ناک، قهرجن، غضبناک.

**غضب** (ğazáb) نر.م. ۱) قهر، غوسه، خوشکه؛ ۲) مج. عذاب.

**غضبناک** (ğazabnák) نر.م.ج. خوشکتي، غضبي، قهرجن، غوسه ناک، توغمه ناک.

**غضروف** (ğazrúf) نر.م. کړپندوکی، کرپندوکی، تنکی هډوکی، کرپندی، چچونکی.

**غضنفر** (ğazanfár) نر.م. ۱) زمری، مزری؛ ۲) ځيږ سړی، شولخ.

**غفار** (ğafár) ص. نر.م. ۱) بخښناوو، بخښونکی؛ ۲) د لوی خدای (ج) له صفتونو څخه يو صفت.

**غفلت** (ğaflát) نر.م. (ج. غفلتونه) ۱) بې خبري؛ ۲) هېرونه، هېرتيا؛ ۳) ناپوهي، ناداني؛ ۵) بې پروايي.

**غفور** (ğafúr) نر.م ۱) غفار، بخښونکی، ښښونکی ۲) د الله جل جلاله يو صفت دی.

**غک** (ğək) نر.م. بک، بغوره، غکا، د وزې بوغاره، د وزې اواز، د بزې ناره يا بغاره.

**غکل** (ğakə́l) مص. ل. بوغارې کول، اوازونه کول، غک کول، غکا کول.

**غکول** (ğəkawə́l) مص. مت. بکول، له وزې بغاره يا ناره ايستل، وزه په اواز راوستل.

**غکېدل** (ğəkedə́l) مص. ل. ۱) بکېدل، بغاره کول؛ ۲) د وزې بغارې کول.

**غل** (ğal) نر.م. (ج. غله) غلا کوونکی.

**غلا** (ğlā) ښځ.م. (ج. غلاوې) مال، پیسه.. پټونه، سرقت، د غله عمل.

**غلاغوندک** (ğlāğūndák) ص.نر.م. غلاوندک، غلچکی، غل، چکغل، غلاګرکی، غلاغندک.

**غلاف** (ğılāf) نـر.م. (ج. غـلافونه) ۱) پـوښ؛ ۲) تېکی، تکه؛ ۳) چرتون.

**غلاګرکی** (ğlāgárkay) و.ګ. غلاغوندک.

**غلام** (ğulám) ص.نر.م.ج. (ج. غلامان) ۱) مریی؛ ۲) مج. بنده، عبد؛ ۳) زوی.

**غلامانه** (ğulāmāná) ق. د غلامی، مریيتابه، د بنده ګی په ډول.

**غلامول** (ğulāmawál) مص. مت. ۱) مریی کول؛ ۲) بنده کول.

**غلامي** (ğulāmí) ښځ.م. مریي واله، مریي توب، بنده ګي، د یوه انسان بشپړ پیوستون دی له بل انسانه سره.

**غلانځه** (ğulánja) ښځ.م. و.ګ. غولانځه.

**غلاوزه**(۱) (ğláwaza) ښځ.م. مچی، غـالبـوزه، لوز، د ګبینو مچمچی.

**غلاوزه**(۲) (ğláwza) ښځ.م. غله غوا، هغه غوا چې د لوشلو په وخت په غولانځه کې شیدې ساتي.

**غلبازی** (ğalbāzay) نر.م. سروزنه، سرو زنې سورې، د پرتوګ د بډې سورې، د بګې سوری.

**غلبله** (ğalbalá) ښځ.م. شـور، شور، ناري سورې، چیغې، فریاد.

**غلبنګی** (ğulbangáy) ښځ.م. و.ګ. غولبنګی.

**غلبه** (ğalabá) ښځ.م. ۱) برلاسه کېدل؛ ۲) زور، زبردستي؛ ۳) ډېروالی؛ ٤) ګڼه ګوڼه.

**غلبېل** (ğalbél) نر.م. پرویزی، چڼوونی، پروز.

**غلبېل غلبېل** (ğalbélğalbél) ص. نب. ۱) سوری سوری، کومبر کومبر؛ ۲) څـوک چې د توپک په ګولیو تپي او سوری سوری شوی وي.

**غلبېلول** (ğalbelwál) مص.مت. ۱) چڼول، چونل، پاکول؛ ۲) سوری سوری کول.

**غلبېلېدل** (ğalbeledál) مص.ل ۱) چڼېدل، چڼ کېدل؛ ۲) سوری سوری کېدل.

**غلجنګی** (ğaljangay) نر.م. بېځایه ټینګېدنه، په چټي خبره ټینګېدنه یا جنګ کول.

**غلچک** (ğalčák) ص. نر.م. غلچکی، غل ګوټی، غلګی، د «غل» مصغر.

**غلچه** (ğalčá) نر.م. د پامیر اوسېدونکی، پامیري ژبې.

**غلشکه** (ğalšaka) ښځ.م. د ل. ګور، ورغستلي، دل شوي غنم.

**غلط** (ğalát) ص. نـر.م. ج. ۱) ناسم، ناصحیح، خطا، سهوه؛ ۲) تېروتنه، اشتباه؛ ۳) وران، خراب؛ ٤) تګ، منافق.

**غلط فهمي** (ğalátfahmí) ښځ.م. د چا په اصلي مطلب ومقصد نه پوهېدل یا له هغه څخه ناسم مطلب ترلاسه کول.

**غلطوالی** (ğalatwālay) نر.م. ۱) غلطي، غلطتیا، ناسموالی؛ ۲) منافقت، تګي؛ ۳) خرابوالی.

**غلطول** (ğalatawál) مص. مت. ۱) ناسمه وجه ورکول؛ ۲) ورانول، خرابول؛ ۳) تېرایستل.

**غلطي** (ğalatí) ښځ.م. ۱) ناسموالی، خطا، سهوه، تېروتنه؛ ۲) تګي، چل، منافقت.

**غلطېدل** (ğalatedál) مص. ل. ۱) غلط کېدل، تېروتنه؛ ۲) غولېدل، تېروتل.

**غلظت** (ğılzát) نر.م. ۱) ګاتهوالی، ټینګوالی؛ ۲) ټینګتیا؛ ۳) سختي؛ ٤) دښمني.

**غل غدوی** (ğalğadóy) نـر.م. ۱) غـل غدو؛ ۲) ق. د غلا په ډول؛ ۳) د غلو د ډلې یو کس.

**غلغبني** (ğalğasáy) نر.م. زياتي غاښ، هغه غاښ چې په اوريو کې زياتي پيدا کيږي.

**غل غل** (ğálğal) نر.م. ١) پټ پټ کېدنه، غل غل کېدنه؛ ٢) يو راز لوبه ده.

**غلغله** (ğulğulá) ښځ.م. شور و خوږ، شور و غوغا.

**غلگی** (ğalgáy) ص. نر.م. و گ. غلچک.

**غلمانه** (ğalmāná) ښځ.م. د غلي د اېښودلو کوټه.

**غلمی** (ğalmáy) نر.م. ١) يو ډول ساراني نبات دی چې د صابون کار ترې اخلي؛ ٢) غمی.

**غلمينه** (ğalmína) ښځ.م. و گ. غنيمنه.

**غلنی** (ğalanáy) ص. نر.م. ١) څوک چې د کار له اجرا څخه تښتي؛ ٢) هغه ښاروی چې په پټه او غلا سره خوراک کوي؛ ٣) د کاريز کار.

**غلنۍ** (ğalanə́y) ښځ.م. د مرز په اندازه يوه وړه مرغۍ ده چې په جبه‌زارو کې اوسي.

**غلو** (ğulū́) ښځ.م. ١) ترحد تېرېدنه؛ ٢) تېری، تجاوز.

**غلوزه** (ğalwza) ښځ.م. و گ. غلاوزه[1]

**غلوله** (ğulolá) ښځ.م. ١) گولۍ، تابليټ؛ ٢) څرخی؛ ٣) مردکه.

**غله** (ğalá) ښځ.م. (ج. غلې) ١) دانې، حبوب؛ ٢) مج. خواړه، پوخ شوی خوراک.

**غله اوښان** (ğaləuṣā́n) د الاداد او پټپټاني په ښهر يوه لوبه ده.

**غله پلوري** (ğaláplōray) غلې والا، غله پلورونکی، بقال.

**غله گي** (ğalágī) د يوه سر تېرې مياشتنې خوراکي توکي.

**غلی** (ğə́lay) ص. نر.م. ١) چپ، چوپ، خاموش؛ ٢) کرار، ارام، بې غرضه.

**غليا** (ğalyā́) ښځ.م. خاموشي، چوپتيا، کراري.

**غلياک** (ğalyā́k) پټه او ناڅاپي نيوکه، شپېنی يرغل.

**غلياکگر** (ğalyakgar) نر.م. شپېنی يرغلگر، ناڅاپي حمله کوونکی.

**غليان** (ğalyan) نر.م. ايشېدنه، خوټېدنه.

**غليانکه** (ğalyā́nka) ښځ.م. يارمخچی، شاغوټی، يو ډول سارايي مرغۍ ده.

**غلېب** (ğaleb) نر.م. درو، دروهنه، چل، ټگي.

**غليتوب** (ğəlitób) نر.م. ١) غليوالی، خاموشي؛ ٢) پټوالی.

**غلېچ** (ğleč) ص. نر.م. پياوړی، غښتلی، ټکره.

**غليظ** (ğalíz) ص. نر.م. ١) گاټه، خټه، ټينگه (مايع)؛ ٢) څيړ؛ ٣) سخته، بده (خبره)؛

**غلې غچې** (ğə́leğā́če) ښځ.ج. ډډه کول، څنگ کول، انحراف.

**غلی غلی** (ğə́layğə́lay) ق. ١) پټ پټ؛ ٢) کرار کرار، ارام ارام.

**غلې غليا** (ğə́leğalyā́) ښځ.م. سره سنا، چوپه چوپتيا، کراره کراري، ارامه ارامي.

**غليلاک** (ğəlilā́k) نر.م. ١) گڼه گونه، ازدحام؛ ٢) هجوم، له حده تېرېدنه.

**غلي لېوان** (ğəlilewā́n) نر.م. کاڼي کرپ، د ماشومانو يو ډول لوبه ده.

**غليم** (ğalím) ص. نر.م. ميرڅی، ميرڅمن، دښمن.

**غليمانه** (ğalimāná) ق. خصمانه، د دښمنۍ په ډول، دښمنانه.

**غليمي** (ğalimí) ښځ.م. دښمني، بدي، پټنه.

**غليواز** (ğaliwā́z) نر.م. غليواج، تېوس، موږک باز، هنس.

**غم** (ğam) نر.م (ج. غمونه) ١) ماتم، نول، مصيبت؛ ٢) مج. اندېښنه، فکر، چاره.

غماز (ğamā́z) ص. نر.م (ج. غمازان) ۱) خبرغل، مواس، چوغلگر؛ ۲) په سترګو او وروځو اشاره کوونکی.

غمباده (ğambādá) ښځ.م. ګروم، غروری، هغه پړسوب چې له غم و فکره د سړي په نس کې پیدا کیږي.

غمبوری (ğambū́ray) نر.م. و ګ. غومبوری.

غمجن (ğamjə́n) ص. نر.م. ج. خوابدی، نتلی، نولجن، خپه، غمګین.

غمجنوالی (ğamjənwā́lay) نر.م. غمژنوالی، خوابدي، خواشینتیا، تأثر، متأثر والی.

غمجنول (ğamjənawə́l) مص.مت. خواشیني کول، په غم اخته کول، مصیبت وړ رسول.

غمجنېدل (ğamjənedə́l) مص.ل. خواشیني کېدل، په غم اخته کېدل، خوابدي کېدل.

غمچین مار (ğamčinmā́r) نر.م. چمچمار، کپچه مار، ګوس منګور، قمچین مار.

غمچینه (ğamčína) ښځ.م. متروکه، قمچینه.

غم ځپلی (ğamǯapə́lay) ص. نر.م. غم لړلی، غم ربړولی، غمو او ربړونو کړولی.

غمخور (ğamxór) نر.م. ج. (ج. غمخوارهٔ) غمخوار، خواخوږی، غم خوړونکی، همدرد.

غمخوري (ğamxorí) ښځ.م. غمخواري، خواخوږي غمخورګي، همدردي.

غمر (ğamə́r) ص. نر.م. غربو نیولی، ژرغونی، له ژړا ډک، ژړانیولی.

غمژن (ğamžə́n) نر.م. ج. و ګ. غمجن.

غمزه (ğamžá) ښځ.م. ۱) سترګک؛ ۲) کرشنه، نخره، کرشمه؛ ۳) میندک، د تاریاکو چلم.

غمشریک (ğamšarík) ص.نر.م. خواخوږی، همدرد، غمخوار، زړه سواند.

غم غلطي (ğamğalatí) ښځ.م. غم غلطونه، د غم او ربړ د هېرولو لپاره ځان په یو شه اخته کول.

غمکش (ğamkáš) ص.نر.م.ج. ۱) غم ګالونکی، غم ایستونکی؛ ۲) غمخور.

غمګین (ğamgín) نر.م. ج. و ګ. غمجن.

غم لړلی (ğamlarə́lay) ص. نر.م. په غم اخته، په غمونو کې ګېر، په تکلیفو اخته.

غمناک (ğamnā́k) نر.م. ج. و ګ. غمجن.

غمور (ğamawə́r) نر.م. ج. ډېر نتلی، ډېر خوابدی، زیات غمجن، ډېر خواشینی.

غمول (ğamawə́l) مص. مت. ۱) خبره اورېدول؛ ۲) پوزې ته راوستل، ربړول، ستومانه کول.

غمی (ğamáy) نر.م. (غمي) نګین، قیمتي کاڼی.

غمېدل (ğamedə́l) مص. ل. ۱) خبره اورېدل، ۲) پوزې ته راتلل، په تنګېدل.

غمیزه (ğamizá) ناتار، ناورین، غم لړلې پېښه.

غنا[۱] (ğenā́) ښځ.م. غنا، بډایي، شتمني، مړښت، مال و شته لرنه.

غنا[۲] (ğı́nā́) ښځ.م. غنا: ۱) سندره، ساز، سرود؛ ۲) ښه اواز، ښه غاړه، ښکلی غږ.

غناره (ğnara) ښځ.م. یو ډول غرنی بوټی دی.

غناشکي (ğnā́ški) ښځ.م. ۱) د اوبو وړ جریان؛ ۲) د لږو اوبو بهېدنه؛ ۳) نو، زېم، زا.

غنایم (ğanā́yam) نر.ج. د غنیمت جمع، ولجې، د غنیمت مالونه.

غنایي (ğınāyí) ص. نب. نر. ښځ. م. په غنا اړوند، د ښه اواز، په ښې غاړې مربوط، د ساز و اواز؛ غنایي شعر: بزمي شعر، تغزلي شعر.

غنج (ğanj) نر.م. نخره، کرشمه، مکېز، ناز، کنج.

غنجالی (ğanjā́láy) ښځ.م. شاډېنګه، اندرچو، مانیچغ، غنجولی، دورو د لوبو یوه آله ده.

**غندل** (ğandál) نر.م. ۱) نار، ډنده، ډنډر، ساقه؛ ۲) تندوری، تیندوری؛ ۳) مص. مت. غاندل، رټل، بدورته ویل، تقبیحول.

**غندل غاړه** (ğandálğāṛa) ښځ.م. نرۍ غاړه، دنگه غړی، دنگه غاړه، صراحي غاړه.

**غندل غاړی** (ğandálğāṛay) ص. نر.م. د نازکې، لوړې او نرۍ غاړې خاوند، جگ غاړی.

**غندلی** (ğandálay) مف.نر.م. ۱) غاندلی، رټلی، تقبیح شوی؛ ۲) نر.م. یکه مېخ، غټ مېخ چې په میدان کې تک وهل شوی وي او آس وربانديې تړي.

**غندنگ** (ğandáng) نر.م. و گ. غندنه.

**غندنه** (ğandána) ښځ.م. غندنگ، رټنه، ناوره گڼنه، تقبیحونه.

**غندو** (ğandó) ص.نب. لېونی وزمه، لېونی غوندې، د لېوني په څېر، لېونغری.

**غندونکی** (ğandū́nkay) فا.نر.م. رټونکي، بدبیانوونکی، بدگڼونکي، تقبیحوونکي.

**غندوی** (ğandáway) نر.م. ترتېزک، تراتېزک، هلم، د اوري بوټی، یوه ترخه شنه گیاه ده.

**غنډایه** (ğanḍáya) ص. نب. بدرنگه، بې ډوله، بدشکله، بدقواره.

**غنزاخی** (ğunzā́xay) نر.م. و گ. غونځابنی.

**غنکی** (ğankáy) نر.م. غنگی، کرکری، دوپچه، یوه آله ده چې له هغې څخه د ښځو مرزو ناري وباسي.

**غنگ** (ğang) نر.م. د موټر یا الوتکې د تېرېدو اواز.

**غنگوری** (ğangū́ray) نر.م. د غوړ پوخکی، د غوړ نرمی، غوړیچنه، د غوړ پوخکی.

**غنگهار** (ğangahā́r) صوت. نر.م. غنگاري، د موټر یا ټبل شي د تېرېدو پر له پسې اواز.

**غنم** (ğanám) جن. یو ډول غله ده چې له اوړو څخه یې غنیمنه ډوډۍ پخېږي.

**غنم رنگی** (ğanámrángay) ص.نر.م. غنم غونی، ارغوش، غنم رنگه، غنم گونی، رغوست.

**غنم گره** (ğanámgára) ص. ښځ.م. هغه ځمکه چې غنم په کې کرل کېږي یا په کې کرل شوي وي.

**غنمین** (ğanamín) ص. نر.م. ج. ۱) غنم رنگی؛ ۲) له غنمو پوخ شوی، له غنمو جوړ شوی.

**غنمینه** (ğanmína) ص. ښځ.م. غلمینه، نغن، د غنمو ډوډۍ، د غنمو ټیکله.

**غنویري** (ğanwíri) ښځ.م. د څېرۍ یا نورو ونو نازکې لښتې یا پاڼې.

**غنه**[1] (ğána) ښځ.م. (ج. غنې) ۱) اغزی، ازغی؛ ۲) گڼ و گور اغزن بوټی؛ ۳) وچ او بې پاڼو ښاخونه.

**غنه**[2] (ğuná) ښځ.م (ج. غنې) گر. هغه خیشومي غږ چې مخرج یې دننه په خوله کې وي.

**غنه یي غږ** (ğunayiğaz) ص.نب.نر.ښځ.م.ج. (گر.) هغه ږغ چې غنه ولري.

**غنی** (ğanáy) ښځ.م. کوټخه، هغه څپری چې له اغزنو ښاخونو څخه جوړه شوې وي.

**غني** (ğani) ص. نب. نر. ښځ.م. ۱) بډای، شتمن، موړ، دولتمن؛ ۲) بې نیازه.

**غنیمت** (ğanimát) نر.م. (ج. غنیمتونه، غنایم) ۱) ولجه؛ ۲) سود، گټه.

**غڼ** (ğaṇ) نر.م. غیڼ، ډگه، د نارینه تناسلي آله.

**غڼاسکي** (ğoṇā́ski) ښځ.م. په ربړ و کړاو سره تگ، ورو ورو تگ، په کړاو ځان رسونه.

**غڼه** (ğóṇa) ښځ.م. غڼې، مچ پړانگ، جولاگک، عنکبوت. تارکنی، جولاگی، جولا.

**غڼې** (ğáṇe) ښځ.ج. و گ. غڼه.

**غنیه خوشته** (ğanyaxušta) ښځ. م. جنغنینه خوشته، اوږده مېرېانه، دارفلفل، د سپینو فلفلو لومړی بار، د پلپل د ونې مېوه ده.

**غو[1]** (ğaw) نر.م. ۱) یو ډول کباب دی چې په لرې کې یې نغاړي او بيا يې د پخولو لپاره د تودو شګو لاندې ږدي؛ ۲) ناري سوري، چغې.

**غو[2]** (ğo) ښځ.م. غوونه، غوول، کورواله، کوروالي، جماع.

**غوا** (ğwā) ښځ.م. (ج. غواوې، غواګانې) د غويي مؤنث، شخوند وهونکی اهلي حيوان دی.

**غوابيږی** (ğwābížay) نر.م. اسمان ښاخکی، حلزون، غواګی، یو ډول نرمه خزنده ده

**غوارودونې** (ğwārodū́ne) ښځ.م. غواروې، غاړبدونی، غاروزینه، یو ډول سمساره ده.

**غواروې** (ğwārowe) ښځ.م. و ګ. غوا رودونې.

**غواړ** (ğwāṛ) ف. دحال و استقبال د فعلو اصلي جز دی او له «غوښتل» سره اړيکې لري.

**غواړه** (ğwāṛá) ښځ.م. غوښتنه، لټون، خلاف قیاس اسم دی.

**غواښکی** (ğwāṣkáy) نر.م. سپم، د ستنې سپم، د ستنې سم، د ستنې سوری.

**غواص** (ğawā́s) ص. نر.م. لامبوزن، مرجونا، مرجورا، غوټه وهونکی.

**غواغوچی** (ğwāğū́čay) نر.م. یو ډول پانې پانې بوټی دی چې د ځونډي په څېر غټ ګل کوي.

**غواګړی** (ğwāgā́ṛay) نر.م. سارانی بوټی دی.

**غواګی** (ğwāgáy) ښځ.م. ۱) د غوا مصغر؛ ۲) د ګلاب په څېر یو ډول خررنګی بوټی دی؛ ۳) حلزون، غوابیږی، قپسی.

**غوالوشه** (ğwālwaša) ښځ.م. لوغی، دکی، توتیې، غوالوشی، دونی، ګودی، دګی.

**غوایډنګ** (ğwāydáng) نر.م. د غويي ښډی.

**غوايي** (ğwāyáy) نر.م. و ګ. غويي.

**غوايي ژبې** (ğwāyižabáy) ښځ.م. اونستې، غوايي ژبه، ګزک پاڼه، د ګوزبان بوټی، یو ډول ګیاه ده چې په طب کې هم کار ترې اخلي.

**غوايي سترګه** (ğwāyistə́rga) ښځ.م. یو ډول بوټی دی.

**غوايي ښکر** (ğwāyiṣkə́r) نر.م. دیو ډول بوټي نوم دی.

**غوباړی** (ğobā́ṛay) نر.م. غوبانی، یو ډول مچ دی چې غويي چیچي؛ ۲) ګونګټه، د غوشیانو حشره؛ ۳) ص. نر.م. شریر، پساتي.

**غوبانی** (ğobā́ṇay) نر.م. و ګ. غوباړی.

**غوبر** (ğobə́r) نر.م. ځوږ، شور، غوغا.

**غوبری** (ğobə́ray) نر.م. باړخو، اننګی، ژمبری، غمبوری، غومبوری.

**غوبل** (ğobə́l) نر.م. (ج. غوبلونه) ۱) په غوايانو درمند میده کول؛ ۲) پایمالونه؛ ۳) مج. د خلکو ګڼه ګونه.

**غوبلرګی** (ğoblargáy) نر.م. موږی، درنګلی؛ هغه لرګی چې د درمند په منځ کې ټک وهل کېږي او د غوايانو پړی ورپورې تړل کېږي.

**غوبلول** (ğobalawə́l) مص. مت ۱) په درمنده کې د غوايانو سره غله میده کول؛ ۲) وهل، پایمالول.

**غوبلېدل** (ğobaledə́l) مص. ل. ۱) درمند میده کېدل؛ ۲) تر پښو لاندې کېدل.

**غوبنی** (ğobanáy) ص. نر.م. ۱) غوبون، غوبه، پاده وان؛ ۲) د غوبه مصغر.

**غوبني** (ğobaní) ښځ.م. غوبه توب، غوبون توب.

**غوبون** (ğobū́n) ص. نر.م. و ګ. غوبه.

**غوبه** (ğobá) ص. نر.م. غوبنی، پاده وان، ګوروان.

**غوپول** (ǧūpawə́l) مص. مت. غوپه کول، غوته کول، ډوبول، په اوبو کې ننه ایستل.

**غوپه** (ǧūpá) ص. نب. نر. م. ښځ. ج. ډوب، غرق، غوټه.

**غوټی** (ǧūṭáy) ښځ. م. ډبې، چمته، ډوبې، ډډې، د ټوپک د دارو کڅوړه.

**غوټ** (ǧwaṭ) ص. نر. م. ج. ۱) چاغ، قوي، کلک؛ ۲) بالکل، قطعي؛ ۳) پرې، غوڅ، قطع.

**غوټ پټ** (ǧwaṭpáṭ) ص. نر. م. ۱) چاغ، شلند؛ ۲) غوټ په غوټ، په پرېکنده ډول.

**غوټ په غوټ** (ǧóṭpaǧóṭ) ص. نر. م. ۱) څرګند، او ښکار، جوت؛ ۲) توري په توري.

**غوټ کوټ** (ǧwáṭkwáṭ) ص. نر. م. ۱) غټ؛ ۲) تازه.

**غوټکی** (ǧoṭakáy) ص. نر. م. چاغکی، غوندو منډ، د غوټ مصغر.

**غوټن** (ǧoṭən) نر. م. غوټه غوټه، غوټې لرونکی.

**غوټندی** (ǧūṭandáy) ص. نر. م. غوپه وهونکی.

**غوټو** (ǧūṭū) نر. م. سره غاړه، وچه مرې، حلقوم.

**غوټول** (ǧwaṭawə́l) مص. مت. ۱) غټول، چاغول، څربول، قوي کول؛ ۲) لویول، سترول.

**غوټه**[۱] (ǧwáṭa) ښځ. م. ۱) سکوټه، بېخي، قطعي، سکیره، چور.

**غوټه**[۲] (ǧūṭa) ښځ. م. ۱) ګنډه، ګره؛ ۲) تنی؛ ۳) د جلغوزې هغه غوزه چې دانې په کې وي؛ ٤) و ګ. سوټیچ.

**غوټه**[۳] (ǧūṭá) ښځ. م. ۱) حمله، برید؛ ۲) ص. نب. نر. ښځ. م. غوپه، غرق؛ ۳) چپه، خپه، د ناروغی.

**غوټه پښتو** (ǧwáṭapaṣ̌tó) ښځ. م. نثره، روانه او سمه پښتو.

**غوټه غوراشه** (ǧūṭaǧwaraṣ̌á) ښځ. م. ۱) ستنه او ګاچ؛ ۲) ستن، تار، ګوتمه او ...؛ ۳) مجازاً جهیز.

**غوټه لمنځه** (ǧūṭalmánǰa) ښځ. م. د لمنځې یو ډول لویه ونه ده.

**غوټۍ** (ǧuṭáy) نر. م. ۱) حباب، کوبی؛ ۲) د تندې یو پسول دی؛ ۳) څوکه، غونډۍ، سرګی.

**غوټۍ** (ǧūṭáy) ښځ. م. ۱) د ګل یا پاڼې هغه نوې زخه او غوټه چې لا غوړېدلې نه وي؛ ۲) د غاړې یو ډول امیل؛ ۳) په ټوپک کې ویشتني ته ځان چمتو کول؛ ٤) کلي، چابي؛ ٥) شبنم، د خولې او اوښکې قطره.

**غوټیالی** (ǧūṭyāláy) نر. م. ۱) هغه مرغېړې چې د څاروي تر ستوني لاندې وي؛ ۲) د ښځو د غاړې یو ډول امیل.

**غوټیالۍ** (ǧūṭyāláy) ښځ. م. ۱) د ښځو د غاړې یو ډول امیل دی؛ ۲) هغه څاروی چې په غاړه کې د غوښې ځوړندې ولري.

**غوټۍ ځان** (ǧoṭaycaṇ) غوټۍ تولوونکی.

**غوث** (ǧaws) نر. م. ۱) مرسته، اعانت؛ ۲) غاورسي، ۳) غاو، فریاد؛ ٤) پناه، ملجاء.

**غوجر** (ǧojár) نر. م. ښوره، شوره، د ځمکې په مخ سپینه مالګینه خاوره.

**غوجل** (ǧojál) نر. م. غوجله، ګورنډه، هغه کوټه یا ځای چې غوا او غوایان په کې تړي.

**غوجو** (ǧojū́) نر. م. د کان ژورتیا، د معدن ژوروالی.

**غوچ** (ǧawč) ص. نر. م. ۱) ژور، تندوره، عمیق؛ ۲) نر. م. ایرې ګډ، ایرې پسه، قوچ.

**غوچالی** (ǧawčálay) نر. م. غوچانی، ډوغل، غوچ ځای.

**غوچانی** (ǧawčáṇay) نر. م. و ګ. غوچالی.

**غوچوالی** (ğawčwā́lay) نسر.م. غوچواله، ژورتیا، ژوروالی.

**غوچول** (ğawčawā́l) مص. مت. ژورول.

**غوچه** (ğawčá) ښځ.م. (ج. غوچې) غوچک، هغه دوغل چې تاکونه په کې کېښنول کېږي.

**غوچېدل** (ğawčedə́l) مص. ل. ژورېدل.

**غوڅ** (gwac) نر.م. پرې، شلېدلی، قطع.

**غوڅ اکثریت** (ğwacaksaryát) قاطع اکثریت، غوڅ ډېرښت.

**غوڅاوو** (ğwacāwū́) ص. نب. غوڅوونکی، پرې کوونکی.

**غوڅ ډېرښت** (ğwacḍerā́ṣt) و.گ. غوڅ اکثریت.

**غوڅکی** (ğockáy) نسر.م. ۱) غویی؛ ۲) غټ خوسکی یا خوسی.

**غوڅ ملاتړ** (ğwacmlā́taṛ) ټينګ ملاتړ، پرېکنده ملاتړ، يو مخيز ملاتړ.

**غوڅوالی** (ğwacwā́lay) نسر.م. قطع والی، پرې والی.

**غوڅول** (ğwacawā́l) مص. مت. پرې کول، قطع کول، شلول.

**غوڅون** (ğwacū́n) نر.م. قطع، مقاطعه.

**غوڅوونی** (ğwacawū́nay) نر.م. قطع کوونکی، پرې کوونکی، د پرې کولو آله.

**غوڅېدل** (ğwacedə́l) مص. ل. پرې کېدل.

**غوډل** (ğoḍə́l) نسر.م. ۱) و.گ. غونډل؛ ۲) هغه فصل چې ورو ورو ايستلو ته نيږدې شوی وي.

**غوډلی** (ğoḍaláy) نر.م. ۱) دلوخې د سرغونډاری؛ ۲) شيرگی، په اوبوکې پوخ شوی د جوارو ورې.

**غور**[۱] (ğwar) نر.م. (ج. غورونه) غروری، غمبه، جاغور؛ ۲) مج. پاړسوب.

**غور**[۲] (ğoar) صوت. نسر.م. ۱) د اوبو، برښنا، سپي او... اواز؛ ۲) نر.م. غوری، برخه، نصيب؛ ۳) مج. ميراث.

**غورا** (ğorā́) ص. ښځ.م. غرهار، غورهار، غورها.

**غوراډاپی** (ğūrāḍāpáy) ښځ.م. لاپې، باتې، غوري، دوري، ډوزي.

**غورازه** (ğorāzā́) ښځ.م. ۱) غوريژه، بوسه؛ ۲) ص. نب. له ښې وتلی، له کاره وتلی، زوړ.

**غورانګه** (ğūrā́ngá) ښځ.م. لمبه، غرغنډه، شغله.

**غوربېړ** (ğurbéṛ) نر.م. گڼه گوڼه، ازدحام.

**غورپژ** (ğwarpáž) نسر.م. غورپش، های هوی، ځوږ، شورماشور، غورپېش، گړونج.

**غورچاڼ** (ğwarčā́ṇ) ص. نر.م. و.گ. غوره چوڼ.

**غورچي** (ğurči) ص. نب. باتک، باتو، لاپک، دوړن، غورتن، ډزو.

**غورځاوڼ** (ğwarǰawaṇ) غورځنګن، يرغلګر، حمله کوونکی.

**غورځکه** (ğūrǰáka) ښځ.م. غورمبه، غورځکه، داوړ غرغړې، د اور لمبه، قوي لمبه.

**غورځنګ** (ğwarǰang) نسر.م. (ج. غورځنګونه) ۱) غورځی، جوبش او خروبش، د اوبو څپه او شدت؛ ۲) مج. حمله، بريد؛ ۳) مج. خوځښت، نهضت.

**غورځول** (ğorǰawā́l) مص. مت. ارتول، اړتول، اچول، اړتاوول، شړل، گوزارل.

**غورځی** (ğorǰáy) نر.م. ۱) غورځنګ؛ ۲) توپونه او خېزونه وهل؛ ۳) لاس و پښې وهنه يا اچونه، ۴) په زوره غږ يا چيغه.

**غورځې پرځې** (ğórǰepárǰe) ښځ.م. ۱) بې واک لاس و پښې اچونه؛ ۲) هڅه کوښښ، هلې ځلې ۳) توپونه وهنه، خېزکې وهل.

**غورځېدل** (ğwarǰedə́l) مص. ل. ۱) السوېدل، ګوزارېدل، ارتاوېدل؛ ۲) ګډېدل، ایشله کول.

**غورځېدن** (ğorǰedan) غورځېدا، غورځونه، حذف، له منځه وړل، لېرې کول.

**غورس** (ğwárs) ص. نر.م. ۱) سخت، کلک؛ ۲) پنډ، پېړ، غټ.

**غورسول** (ğwərsawə́l) مص.مت. ۱) سختول، کلکول؛ ۲) پنډول، ضخیمول، پېړول.

**غورسېدل** (ğwərsedə́l) مص. ل. ۲) پنډېدل، پېړ کېدل؛ ۱) کلکېدل، سختېدل.

**غورغوشت** (ğorğúšt) نر.م ۱) مستي؛ ۲) مېله، غرمچ، غرغښت، ساتېري.

**غورغوشتو** (ğorğuštu) فا. نر.م. هوسا، بنداري، چړچه مار.

**غورغوښتی** (ğorğūṣtáy) نر.م. ورلښتی، غوریشتی، وربښتی، غرنی بادام.

**غورغی** (ğūrğáy) ښځ.م. کړی، کړه، چمبی، حلقه.

**غورکمانه** (ğwərkamā́na) ښځ.م. د اوږدې ډانګې ژې لرونکې لینده.

**غورکی** (ğūrkáy) نر.م. ۱) د پیشو غورېدنه؛ ۲) له پېغور او نفرته ډکې خبرې؛ ۳) د خلکو ګنه ګونه او شور.

**غورلنډسه** (ğwarlanḍása) ښځ.م. غورځکه، د اور غټه او قوي لمبه.

**غورله انا** (ğwə́rlaanā́) ښځ.م. غوره نیا، ورله انا، د مور نیا، د پلار انا، د نیا او نیکه مور.

**غورمچ** (ğwarmáč) نر.م. بګڼ، غټ مچ، یو ډول لوی مچ دی.

**غورمڼه** (ğwərmaṇá) ښځ.م. ناک، نشپاتی، د نشپاتي ونه او مېوه.

**غورمه** (ğormá) ښځ.م. (پخ.) قورمه، یو ډول خواړه دي.

**غورنډاز** (ğūranḍā́z) نر.م. بوربوړ انکه، پرپرکی، غرانداز، دماشومانو د لوبو یوه آله ده.

**غورنیکه** (ğwárnikā́) نر.م. (ج. غورنیکونه) ورنیکه، د نیکه پلار، د پلار نیکه.

**غوره**[1] (ğwára) ص.نب. ۱) چاڼ شوی، انتخاب شوی؛ ۲) مج. ښه، نېک، صالح.

**غوره**[2] (ğóra) ښځ. م. (ج. غورې) ۱) دوړه، لاپه، باته؛ ۲) پرتم، دبدبه؛ ۳) اومه او شنه مېوه؛ ٤) له ترو انګورو څخه وچه شوې مساله؛ ۵) یو ډول نبات دی؛ ٦) بربرې، د اوښ بربرې.

**غوره پوره** (ğūrápūrá) ښځ.م. غپا، دسپي غورېدا او غوغو، د سپي رېړېدل.

**غوره ټپه** (ğoraṭápa) ق. ناڅاپه، نابېره، غورډبه، بې خبره، ناخبره، په بې خبرۍ کې.

**غوره چوڼ** (ğwáračūṇ) ص. نر.م. ج. غورچاڼ، ټاکل شوی، خوښ شوی، انتخاب شوی.

**غوره کوونکی** (ğwárakawū́nkay) نر.م. چاڼ یاچڼ کوونکی، انتخابوونکی.

**غوره ګل** (ğoragul) نر.م. کلکه خټه ده چې د چاڼ او وسکو له پاسه د کوټې په بام اچوله کېږي.

**غوره لم** (ğoralám) نر.م. ● غرنی بوټی دی.

**غوره نیا** (ğwáranyā́) ښځ. م. ● ګ. غورله انا.

**غوره والی** (ğwárawā́lay) نر.م ۱) چاڼ، انتخاب؛ ۲) امتیاز، ښه والی.

**غورهار** (ğorahā́r) صوت. نر.م. غرهار، د سپي، زمري، د توپ ډزو... پرله پسې اوازونه.

**غوری** (ğoráy) نر.م. (ج. غوري) ۱) ترغاب غټ لوښی؛ ۲) غور، برخه، قسمت، نصیب.

**غوري** (ğori) نر.م. مج. پنډي، پلنډي، جوالي.

**غوري** (ğwáre) ښځ.م. ۱) لاپې؛ ۲) مجلس، خوږ ملجس، خبرې اترې.

**غورياجه** (ğoryājá) ښځ.م. و گ. غورېږه.

**غوريالی**(۱) (ğwaryāláy) نر.م. ۱) لاپک، لاپو، غوزې کوزنکی؛ ۲) توکی، توکمار.

**غوريالی**(۲) (ğwayāláy) نر.م. غوری، غورلرونکی، جاغورلرونکی، د چاچې په مری کې غور وي.

**غوريانی** (ğwaryānáy) نر.م. غوړيانی، د غنمو گل.

**غورېدل** (ğūredál) مص.ل. ۱) غرېدل، غرهاری کول، کنېدل؛ ۲) عبثې او چتې خبرې کول.

**غوريز** (ğwaríz) ص. نر.م. غوره، ښه، بهتر، تر تولو غوره، خوښ کړی.

**غورېږه** (ğoreža) نر.م.ج ۱) غورازه، بويا، بويه؛ ۲) غورياجه، غورېږه، يو ډول غرنی بوټی دی.

**غوړ** (ğwaṛ) ص. نر.م. ۱) په غوړو شوی، په غوړو ککړ؛ ۲) مج. تر و تازه؛ ۳) بډای، شتمن؛ ۴) جن. غوړي؛ ۵) تېل.

**غوړاڅکی** (ğwṛackay) نر.م. غوېړاڅی، ويږوڅی، غوړاسکی، يو ډول غرنی بوټی دی.

**غوړاسکه** (ğwaṛáska) ښځ.م. يو ډول نبات دی چې د غنمو په فصل کې راشين کېږي.

**غوړاسکی** (ğwaṛáskay) نر.م. غوړاڅکی، زېږوونی، يو ډول بوټی دی چې په مونسوني اقليم واله سيمو کې زرغونېږي، چې سپين و سپين سورچکه گل نيسي.

**غوړاشه** (ğūṛašá) ښځ.م(ج. غوړاشې) ۱) غړيک د تنې سوری، غوړياشه؛ ۲) د تار هغه کړی چې تنې په کې ننه باسي.

**غوړانځه** (ğūṛānja) ښځ.م. خړسکه، خوړسکه، غوړوسکه، گڼ لوگی، شنه لوخړه، ډډوزه.

**غوړانگه** (ğūṛānga) ښځ.م. پلوشه، وړانگه، برانگه، د لمر شغله، د نمر وړانگه.

**غوړانگی** (ğwaṛāngay) نر.م. يو ډول غرنی بوټی دی.

**غوړاوو** (ğwaṛāwū́) ص.نر.م. غوړه مال، ستلی، متاز، چاپلوس.

**غوړاوی** (ğwaṛaway) غوړه مالي، چاپلوسي، تملق.

**غوړبېچن** (ğwaṛbején) نر.م. ۱) غوړمېچن، غوړبېچن، لږ څه غوړ؛ ۲) يو څه غوړ و خيرن.

**غوړپ** (ğwaṛáp) نر.م. غړپ، شړپ، شوپ، گوټ.

**غوړپړ** (ğwáṛpáṛ) ص. نر.م. ۱) په غوړو لړلی؛ ۲) مج. ښايسته؛ ۳) تر و تازه؛ ۴) مج. بډای.

**غوړپکه** (ğoṛpáka) ښځ.م. ۱) پېښه، واقعه، ډکه، ناڅاپي پېښه؛ ۲) چاپېره، څپېره.

**غوړپکی** (ğwaṛpakáy) ښځ.م. څپېره، څپراخه، چپلاخه.

**غوړپل** (ğwaṛapál) مص. مت. غړپل، غړپول، گوټل، گوټ کول، شوپ کول.

**غوړپول** (ğwaṛapawál) مص. مت. و گ. غوړپل.

**غوړپېدل** (ğwaṛapedál) مص.مت. گوټ کېدل، غړپ کېدل.

**غوړپيش** (ğwaṛpiš) نر.م. ۱) غوړپش، غوره پشه؛ ۲) غوسه، قهر، غضب؛ ۳) غم.

**غوړپېکی** (ğwaṛpekáy) ص.نر.م. ډولي هلک، نوی ځوان چې څونډې لري.

**غوړځکه** (ğūṛǰáka) ښځ.م. و گ. غوړځکه.

**غوړخولی** (ğwaṛxū́lay) ص.نر.م. ځان خوښی، ځوک چې خپل ځان وخپېته پرې ډېره گرانه وي.

**غوړرانجه** (ğwáṛrānjá) جن. هغه رانجه چې په کوچو کې لړل شوي وي.

**غوړزاخی** (ğwaṛzaxáy) نر.م. انغښته، غونځاښی، گونځاښی، خجور.

**غوړزگي** (ğwaṛzagí) جن. ۱) غوړزي، غـوړ؛ ۲) دغوړو نښه، د غوړو اثر.

**غوړزنگ** (ğwaṛzáng) نر.م ۱) غوړزون، وازگه؛ ۲) پیاوه، شکنه.

**غوړژبی** (ğwaṛžábay) نـر.م. ۱) څوک چې په ژبه نرم، چالاک او خوږ وي؛ ۲) ښځ. م. غوړه ژبه کول، په نرمه خوږه ژبه سره خبرې کول.

**غوړسترگی** (ğwaṛstárgay) ص.نر.م.د ښکلو سترگو خاوند، د ښایستو سترگو څښتن.

**غوړسکه** (ğwáṛaska) ښځ.م. غوړشکه، غړوسکه؛ ۱) خوړسکه، گڼ لوگی؛ ۲) ص. گڼ فصل.

**غوړشکه** (ğwáṛška) ص. نب. ۱) دسته، گېډۍ؛ ۲) گڼ؛ ۳) ښځ.م.و گ. غوړسکه.

**غوړشکه غوړشکه** (ğwáṛškağwáṛška) ص.نب دلې دلې، دسته دسته، گېډۍ گېډۍ.

**غوړگه**(۱) (ğwáṛga) ښځ.م. ۱) نیالگی؛ ۲) شنه او تازه څانگه؛ ۳) هغه نل چې منځ یې ډک وي.

**غوړگه**(۲) (ğū́ṛga) ښځ.م. پړکی، دپښې پنډۍ.

**غوړگی** (ğwaṛgáy) نر. م. و گ. غوړکی.

**غوړلانه** (ğwaṛlā́na) ښځ.م.غوړلوښی ،هغه لوښی چې غوړ وي.

**غوړلستونی** (ğwaṛlastóṇay) ص. نـر.م. مـوړ، بډای، شتمن، دولتمن، ثروتمند.

**غوړلی** (ğwaṛláy) ښځ.م. د جـوارو هـغـه شتی چې دانې یې نه وي نیولې.

**غوړم** (ğwṛám) صوت. نـر.م. غـړم؛ د پړانگ، زمري، سپي د حملې اواز.

**غوړمال** (ğwaṛamā́l) ص . نـر.م. غـوړه مـال، چاپلوس، متملق، خوشامندگر.

**غوړمبه** (ğūṛambá) ښځ.م.د اوړ غټه او قوي لمبه.

**غوړمرغه** (ğwaṛmərğá) ښځ.م. هغه واښه چې د گنډنې په څېر تل شنه او تازه وي.

**غوړمړېجه** (ğwaṛmərejá) ښځ.م. اول واري غوا، اول باري غوا.

**غوړمېچک** (ğwaṛmečák) نر.م. غوړمېسن، غوړمېجن، لږ غوړ شوی، غوړېجن.

**غوړمېسن** (ğwaṛmesə́n) و گ. غوړمېچک.

**غوړنجه** (ğwaṛánja) ښځ.م. و گ. غوړځکه.

**غوړنځی** (ğūṛanjáy) نر.م. غـړنځی، جنغوزی، د جلغوزې ونه.

**غوړنی** (ğwaṛanáy) نـر.م. هغه مـواد چې غوړ ولري، هغه څه چې غوړ لري.

**غوړوکی** (ğwaṛūkáy) ښځ. م. غوټۍ، هغه گل چې لا غوړېدلی نه وي.

**غـوړول** (ğwaṛawə́l) مص.مت. ۱) ویړول، خپرول، اوارول؛ ۲) پرانیستل، خلاصول؛ ۳) په غوړو لړل، غوړي پرې مښل.

**غوړه** (ğwáṛa) ښځ.م. ۱) نرمه خبره، مداهنه، پسته وینا؛ ۲) د غوړ مؤنث.

**غوړه کی** (ğwáṛakay) نر.م. غوړگی ۱) دنباتاتو یوه نـاروغي؛ ۲) کنې، جنجـړی، یـو ډول بوټی دی چې پړ ونو او بوټو خېژي.

**غوړه مال** (ğwaṛamā́l) ص. نر.م. و گ. غوړمال.

**غوړي** (ğwaṛí) جن. ۱) غوړ، غـوړگینه مادده چې له پېړوي، وازگې یا له نباتي دانو څخه یې باسي؛ ۲) تېل.

**غوړیاشه** (ğwaṛyāšá) ښځ.م. ۱) غوړاشه،غړاشه، د تنې سوری، د تنې کاج.

**غوړیالی** (ğwaṛyāláy) ص. نر.م. غوړ، په غوړو خیرن.

غوږیانځکی (ǧwaryānǰakáy) ښځ.م. وګ. زمبک.
غوږیانه (ǧwaryāna) ښځ.م. د زمبک د کورنۍ یو ګل دی چې شین (آبي) رنګی ګل لري.
غوږېجن (ǧwarejə́n) ص. نر. وګ. غوږمېچک
غوږېځن (ǧwarejən) نر.م. وګ. غوږمېچک.
غوږېڅی (ǧwarecáy) ښځ.م. ګوږګوټې ځنې، ګوږګوټې وینبتان، ګارګوټې ځنې.
غوږېدا (ǧwareda) ښځ.م. غوږېدنه، اوارېدنه، پرانیسته، په غوږو ککړېدنه.
غوږېدل (ǧwaredál) مص.ل ۱) خپرېدل، اوارېدل؛ ۲) پرانیستل کېدل؛ ۳) په غوږو لړل کېدل.
غوږېږه (ǧwarežá) ښځ.م. وګ. غوږېږه.
غوږېشه (ǧwarešá) ښځ.م ۱) غوراشه، غوږیاشه؛ ۲) ګالګوټې وینبته؛ ۳) تور څلاند غوږ.
غوږي مست (ǧ(ū,wa)rimást) نر.م. کنوچه، کنچه، یو ډول نبات دی.
غوږینی (ǧwarináy) ښځ.م. د پیو کتوی چې شودې په کې تودېږي.
غوز[۱] (ǧoz) نر.م. د پچو کولمه واز ګینه پرده.
غوز[۲] (ǧūz) نر.م. اکوږ، متک، جوز، چارمغز.
غوزار (ǧūzā́r) نر.م. (ج. غوزارونه) ۱) ګوزار، وار؛ ۲) لوېدنه، غورځېدنه.
غوزارول (ǧūzārawə́l) مص. مت. ۱) ګوزارول، غورځول، اچول؛ ۲) ځملول، پرزول، نسکورول.
غوزارېدل (ǧuzā́redə́l) مص. ل. ۱) ګوزارېدل، لوېدل، غورځېدل؛ ۲) ځملاستل، پرځېدل.
غوزاړی (ǧūzā́ray) نر.م. غوزکرکی، ګونګټ، بوړا؛ یوه حشره ده، د غلیظه موادو مرغتانه.
غوزبه (ǧózba) ښځ.م. یو ډول ونه ده چې تېرې تېرې پاڼې لري.

غوززی (ǧūzázay) نر.م ۱) غوزی، غوټه، کونی؛ یوه حشره ده؛ ۲) هغه مسوری چې د چینجي له خوړلو څخه په غرکه کې پیدا شوی وي.
غوزه (ǧozá) ښځ.م ۱) غوټه، غونداری؛ ۲) د پنبې ګل (غوټه)، کالکه، تپوسی؛ ۳) د ښځو یو ډول والي، د ښځو موندری؛ ٤) خسبه.
غوزه کرکی (ǧūzakárkay) نر.م. ۱) غوزه ګرکی، تاز، چرچرانکی، یو ډول ملخ دی؛ ۲) ګونګټ، ګینګټ، لویه خزنده ده چې په غوشایو او مرداری کې اوسېږي.
غوزی (ǧozáy) نر.م. ۱) غېږ؛ ۲) مج. غېږه نیونه؛ ۳) ګېډی، د وښو ګېډی.
غوزي (ǧū́zi) ښځ.م. پشکه، داره، داره وهنه، داره وهنګ.
غوژور (gožawā́r) نر.م. د یوه بوټي نوم دی.
غوژه[۱] (ǧožá) ښځ.م. وژه، توره مرغه، یو ډول نبات دی.
غوژه[۲] (ǧwažá) ص. نب. غوبژه، کلک، تینګ.
غوژی (ǧūžáy) نر.م. لوی مشک، لوی ژی.
غوږ (ǧwaẓ) نر.م. (ج. غوږونه) د اورېدلو او د بدن د تعادل د ساتلو یوه آله ده.
غوږ بوچی (ǧwáẓbū́čay) ص. نر.م. ۱) بوچ غوږی، غوږ پرې کړی؛ ۲) نر.م. د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.
غوږ بوڅی (ǧwáẓbū́cay) نر.م. ۱) په پټه د چا خبرو ته غوږ نیونه؛ ۲) پس پسی، ګونګوسی.
غوږ تاوی (ǧwaẓtaway) غوږ تاو، غوږ تاوونه، رټنه، ګوشمالي.
غوږ تومبونی (ǧwáẓtūmbū́nay) نر.م. غوږ کاسی، هغه شی چې غوږونه پرې پاکوي.
غوږ خوږی (ǧwáẓxuẓay) غوږ درد، غوږ خوږېدا.

**غوږکاسی** (ğ̌wazkāsáy) نر.م. و گ. غوږتومبونی.

**غوږکی** (ğ̌wazakáy) ښځ.م. ج. ۱) له یخنی څخه د محافظت لپاره دغوږو خولۍ؛ ۲) پس پسی کول، په غوږو کې پټې خبرې کول.

**غوږمبوری** (ğ̌wazambū́ray) نر.م. ۱) دغوږو شاتنی هډوکی؛ ۲) هغه بڼکې چې دځینو چرګو د غوږو شاته راوتلې وي.

**غوږمک** (ğ̌wazmák) نر.م. یوه سخته ناروغي ده چې آثار یې د غوږ په شا کې پیدا کېږي.

**غوږن** (ğ̌wázan) ص. نر.م.ج. خبر، واقف، آگاه.

**غوږندرویه** (ğ̌wzandrṓya) ص. نب. غوږ ایستونی غوږوڅی، په پټه د خلکو خبرو ته غوږ نیول.

**غوږو** (ğ̌wazū́) ص. نب. داوږدو غوږو خاوند.

**غوږوڅی** (ğ̌wazócay) نر.م. و گ. غوږندرویه.

**غوږور** (ğ̌wazawár) نر.م. ج. و گ. غوږو.

**غوږوکی** (ğ̌wazū́kay) نر.م. پېڅکه، دغوندي جوال او څادر ځنډه.

**غوږول** (ğ̌wazawál) مص. مت. خبرول، پر غوږ وهل، غوږونو ته رسول.

**غوږی** (ğ̌wázay) نر.م. غوږبی؛ ۱) کوږی، ورکوتی پټی چې د نورو پټو منځ یا یوه گوټ ته پروت وي؛ ۲) د هر شي گوټ یا کنج؛ ۳) گوټک، گوټکه؛ دموسیقي د تاریزو آلو یوه پرزه.

**غوږۍ** (ğ̌wazə́y) ښځ.م ۱) کتوه؛ ۲) ځبره؛ له توکر څخه جوړه شوې غولوونکې ځبره؛ ۳) گنگوسی، پسپسکې؛ ٤) رسیور، د ټیلفون گوشکه.

**غوږېچنه** (ğ̌wazečána) ښځ.م. غوبرنی، د غوږ بوڅکی، غوږچینه.

**غوږېدل** (ğ̌wazedə́l) مص. ل. ۱) پر غوږ وهل کېدل، خبرېدل؛ ۲) قسماً خبرېدل.

**غوږیز** (ğ̌wazíz) ص. نر.م. ج. ۱) غوږ لرونکی؛ ۲) اورېدونکی.

**غوږایښونی** (ğ̌wazıṣū́nay) ص. نر.م. و گ. • غوږندرویه.

**غوشاک** (ğ̌ošā́k) جن. غوشیاړې، خوشایې، غوشایې، غوشایه.

**غوشایه** (ğ̌ošāyá) جن. ښځ.م. و گ. غوشاک.

**غوشیاړې** (ğ̌ošyā́ṛe) جن. و گ. غوشاک.

**غوشېړ** (ğ̌ošéṛ) نر.م. ۱) ناولی ځای، ککړ ځای؛ ۲) دېران، د غوشایو ځای.

**غوښت**[1] (ğ̌oṣt) جن. گوښت، د ړندو په ځېر یو ډول غله ده چې مرغانو ته ورکوله کېږي.

**غوښت**[2] (ğ̌waṣt) نر.م. غوښتنه، هیله، سوال، خواهښت.

**غوښت**[3] (ğ̌ū́ṣt) ف. غوښته، د استمراري ماضي صیغه ده.

**غوښتل** (ğ̌ūṣtál) مص. مت. ۱) غوښتنه کول؛ ۲) رابلل؛ ۳) طلبگاري کول؛ ٤) التول.

**غوښتنلیک** (ğ̌ūṣtənlík) نر.م. وړاندیز، پېشنهاد، درخواست، عرض پاڼه.

**غوښتونی** (ğ̌ūṣtū́nay) نر.م. ۱) د غوښتلو شی، څه چې غوښتل کېږي؛ ۲) فا. نرم. غوښتونکی، طلبگار.

**غوښته** (ğ̌ūṣtá) نر.ج. غوښتنه، طلب، هیله.

**غوښلن** (ğ̌waṣlə́n) نر.م. ج. ۱) غوښور، غوښن، شلند، چاغ، تیار؛ ۲) غوښه لرونکی.

**غوښورتوب** (ğ̌waṣawartṓb) نر.م. غوښورتیا، چاغوالی، شلندتوب.

**غوښه** (ğ̌wáṣa) ښځ.م. یو (سور رنگی) جسم دی چې د انسان، حیوان، مرغه او نورو په بدن موجود وي.

**غوښين** (ğwaṣin) ص. نر.م.ج. غوښن، غوښلن، چاغ، شلند، څورب؛ په غوښو پټ.

**غوغا** (ğawğā) ښځ.م. (ج. غوغاوې) شور، ځوږ، شوربګت، کوکارې.

**غوغو** (ğáwgáw) نر.م. غپېده، غپېدنه، غپا.

**غوګی** (ğwágay) نر.م وړوکی پتی، کوچنی پتی، د کونج ورکوتی پتی.

**غول**[1] (ğwál) جن. د کې متیازې، غایطه مواد.

**غول**[2] (ğūl) ص. نر.م.ج. ۱) سوډر، شوده، لېډر، بېعقل، احمق، نادان؛ ۲) غولی، اوبګرځنی، ګرداو.

**غول**[3] (ğol) نر.م. ۱) ډله، لښکر؛ ۲) د غنمو د ک جوال، ورته، ول.

**غولاټی** (ğolāṭay) ص.نر.م. ۱) غولن، غولاوڼ؛ ۲) مج. دارن، بیرندونکی.

**غولانځور** (ğulanǰawar) ص. نر.م. غولانځه لرونکی، غتې غولانځې (غولیانځې) والا، غولانځه‌لرونکی حیوان.

**غولانځه** (ğulānǰa) ښځ.م. (ج. غولانځې) ۱) غولیانځه، غلانځه، د بدن هغه برخه چې شیدې پکې زېرمه کېږي؛ ۲) یو ډول ګیاه ده چې ابي رنګی ګل کوي.

**غولاوڼ** (ğūlāwáṇ) نر.م. و.ګ. غولاټی.

**غولبند** (ğūlbánd) نر.م. (لو.) یو ډول لوبه ده.

**غولبنګی** (ğwálbangáy) ښځ.م. ټټی، مکان، باس، بیت الخلاء.

**غولبه** (ğolbá) ښځ.م. و.ګ. بیوه.

**غولک** (ğolák) نر.م. هغه محفظه (سوندخ، بکس ....) چې پیسې په کې ساتي.

**غولکه** (ğoláka) ښځ.م. (ج. غولکې) دوښاخه، ربړ، لینده، غولقه، لینده، جیر.

**غولمرګ** (ğūlmárg) نر.م. نسو، زو، د دانې او زخم زوه یا نو.

**غولن** (ğwáln) ص. نر.م.ج. ۱) غولاټی، غولاوڼ؛ ۲) مج. دارن، بیرندوکی.

**غولنګ** (ğoláng) نر.م. د مغاندې غوټه، د غبندې غوټه، د مغاندې مرغېړې.

**غولنه** (ğwəlána) ص. ښځ.م. ۱) د غولن مؤنث؛ ۲) مج. چټې خبره؛ ۳) ښځ.م. غولنې، غولونې، غولونکې، ګومجکه، د سترګې دځېږمې دانه.

**غولول** (ğolawál) مص. مت. تېرایستل، ختا ایستل، دروهل، غلطول، تېرباسل.

**غوله** (ğolá) ښځ.م. ۱) کونده، ګرګه، برغندې؛ ۲) د مایعاتو اندازه او نښه کول.

**غولی** (ğólay) نر.م. (ج. غولی) جوس؛ د کور دننه خالي ځمکه، حویلی، د حویلې صحن.

**غولۍ** (ğūláy) ښځ.م ۱) ګرداو، خارخوری، څرخاو؛ ۲) ګڼه ګونه، ازدحام؛ ٤) غړوسکه.

**غولیچ** (ğolíč) ص. نر.م. سیکمن، قوي، غلیچ.

**غولېدل** (ğoledə́l) مص. ل. دروهېدل، ختا وتل، تېروتل.

**غولۍ غولۍ** (ğūláyğūláy) ص. نب. ۱) ډېرۍ ډېرۍ، دلۍ دلۍ؛ ۲) ډلې ډلې؛ ۳) ځېپې ځېپې.

**غولي ناسته** (ğólināsta) ښځ.م. پښه ماته، مندماتی، پښه ارته (پایوازي).

**غوماشه** (ğūmāša) ښځ.م. شه، میاشی، ماشی، ساګی، غوماشی، یوه مضره حشره ده.

**غومبار** (ğūmbār) نر.م. ۱) توره خورسکه، ګڼ و تریخ لوګی؛ ۲) ګڼ و پرله‌پسې اوازونه.

**غومباره** (ğūmbārá) ښځ.م. ۱) وړوکی توپ؛ ۲) هغه پړسوب چې له وهلو یا د مچیو له چیچلو پیدا کېږي.

غومبر (ğūmbáṛ) نر.م. د مستۍ په وخت کې د کوترې اوازونه.

غومبسکه (ğūmbə́ska) ښځ.م. بړوقی، راوتلی ځای، راوتلې ختېته لکه د دېوال.

غومبسه (ğūmbə́sa) ښځ.م. ۱) و.گ. غالبوزه؛ ۲) مچۍ.

غومبک (ğūmbák نر.م. ۱) غروبشته، ښکې، یو ډول نبات دی؛ ۲) گڼ، گور فصل.

غومبوری (ğūmbū́ry) نر.م. اننگی، بارخو، غمبری، غمبوری، ژمبری، ووتی، بغور.

غومبوسکی (ğūmbū́skay) نر.م. بوغمه، غومبه، پړسوب.

غومبه (ğūmbá) ښځ.م. و.گ. غومبوسکی.

غومبی (ğūmbay) ص. نر.م. تیټ، لنډی، غونډمنډ.

غومبي (ğūmbí) ص. نب. ۱) غومبه؛ ۲) غومبې غومبی، راوتلی راوتلی.

غومړه (ğūmáṛa) ښځ.م. غوړه نمړی.

غومی (ğū́may) نر.م. شربی، یو ډول نبات دی چې ژېړ گل کوي.

غومېدل (ğūmedə́l) مص. ل. ۱) گوربدل، غوم غوم کول؛ ۲) د یو چا د ټهرولو په نیت سپورې ستغې خبرې کول.

غوناجی (ğonājáy) ښځ.م. گستره، څهرله غوا، خوسۍ، خسۍ، غوڅکۍ.

غوناره (ğonára) ښځ.م. یو ډول غرنی خوشبویه بوټی دی.

غونتی (ğūntáy) ښځ.م. هغه گرنگ (قني) چې د کوچني له پوزې راڅوړند وي.

غونج[۱] (ğ(o,wá)nj) ق. راټول، ټول، غونډ، گونجې، گونځې، منجیله.

غونج[۲] (ğwanj) نر.م. ۱) غوندی، گوندی، ملو، شلیته؛ د بوسو لوی جوال چې په اوښ بارېږي؛ ۲) دبوسو خره، د بوسو کوټه.

غونجا (ğwanjá) ص.نب. ۱) لټ، ناراسته، بې ښې؛ ۲) عاجز، گوښه ناستی.

غونج منج (ğ(o,wə)njmánj) ق. غونډ منډ، راټول شوی، تونډ شوی، منجیله شوی.

غونجوالی (ğonjwā́lay) نر.م. گونځې والی، غونځې والی، گونجې والی.

غونجول (ğ(o,wa)njawál) مص.مت. ۱) گونجې گونجې کول؛ ۲) کلوله کول؛ ۳) د اوربشو او غنمو گېډۍ راټولول.

غونجی (ğūnjáy) ښځ. م. یوه غرنۍ ازغنه ونه ده چې گنه راشنه کېږي.

غونجی (ğunjáy) ص.نر.م. ۱) گونجې، گونځې؛ ۲) کلوله، غونډ، راټول شوی.

غونجېدل (ğ(o,wa)njedál) مص.ل. ۱) گونجېدل، گونځې کېدل؛ ۲) کلوله کېدل؛ ۳) د غنمو او اوربشو گېډۍ راټولېدل.

غونځاښی (ğunǰāṣáy) نر.م. ۱) رنځخی، گونځاښی، ځنځخی، خجوره، بوسراغه؛ ۲) د الاجې (حلاجې) د میل پرې.

غونځرکی (ğwanǰárkay) نر.م. نوی زېږېدلی ورغومی او سهرلکی.

غونځول (ğūnǰawál) مص. مت. ځنگ په ځنگ حرکت ورکول، یو ځای حرکت ورکول.

غونځه (ğwánǰa) ښځ.م. یو ډول ونه ده، سرې سرې دانې کوي.

غونځی (ğūnǰay) نر.م. غوندی، جوال، لوی غوندی.

غونځېدل (ğūnǰedál) مص. ل. یو ځای حرکت کول، ځنگ په ځنگ حرکت کول.

**غوندرکی** (ğündrə́kay) نر.م. و گ. غوندری.

**غوندری** (ğundəray) ص. نر.م. گېنتی، خندی، غوندرکی، جندری، ټيټ، غوندکی.

**غونده** (ğündə́) ص.نب. پوسی، غيبه وربشل شوې، شنلې او تار تار شوې ورې، ټکهدلې ورې.

**غوندی** (ğǘnday) نر.م. گوندی، ورين غټ جوال، داسې ورين غټ جوال چې دوه خانې ولري.

**غوندې** (ğónde) اد. لکه، په شېر، په ډول.

**غونډ** (ğwánd) نر.م. ۱) ټولگی، د خلکو ډله؛ ۲) ص. نر.م.ج. ټوله، گرده؛ ۳) کلوله، گردی؛ ٤) د غره لوړه غونډۍ؛ ۲) عس. غنډ، د کنډک او لوا ترمنځ يو عسکري تشکيل دی.

**غونډاری** (ğwandárəy) نرم. کلوله، گردی؛ هر شی چې غونډمند وي.

**غونډارۍ** (ğündāráy) ښځ.م. ټکی، ټيکلی ځکی، ورهٔ ډوډۍ.

**غونډال** (ğondā́l) نر.م. سيستم، سيستم، جهاز.

**غونډايه** (ğwandā́ya) ص.نب. بدرنگه، بې ډوله، د بدې جولې څښتن.

**غونډژبی** (ğwandžábay) ص. نر.م. تورى، گنگوری، ترژبی، ترتری، دروندژبی.

**غونډسر** (ğwandsár) نر.م. گونده سر، د ځنگل د ونو هغه پانې چې د گنوالي له امله تولې شوي او خوسا شوې وي.

**غونډسری** (ğwandsáray) ص. نر.م. ۱) گردی سری؛ ۲) د اوبو مرغی په شېر يو ډول بوټی دی چې سپين گل کوي او غونډ مند ښاخونه لري.

**غونډسکه** (ğwandska) ښځ.م ۱) توپ، پنډوس؛ ۲) گيند لوبه؛ ۳) غونداری، گردی.

**غونډک**[1] (ğ(wa,u)ndak) نر.م.و گ. غونډل.

**غونډک**[2] (ğwandák) ص. نر.م. غونډکی، گردی، غونډ منډ.

**غونډکۍ** (ğündakáy) ښځ.م. ۱) د کميس د گرېوان نخي تنۍ؛ ۲) وره غونډۍ.

**غونډکی** (ğwandakáy) ص.نر.م. ۱) لنډکی، د ټيټ قد څښتن؛ ۲) نر.م. د ټوپک زخه.

**غونډل** (ğ(wa,u)ndál) نر.م. غوډل. غوندک، کوکې، غنې ته ورته يو وړه ژبېړه حشره ده.

**غونډله** (ğondlá) جمله، وينا، کلام.

**غونډمشر** (ğwándmaşár) نر.م. په عسکري کې له جگړن څخه لوړه رتبه وه.

**غونډمنډ** (ğwándmənd) نر.م. ۱) گردی، غونډکی؛ ۲) گرد، کلوله؛ ۳) چاغ.

**غونډو** (ğondó) ښځ.م. د ښکلې او چاغې ښځې لقب.

**غونډواری** (ğwandwāráy) نر.م. د ناوې يوه گانه ده چې غونډه غونډه وي او لمنې هم لري، لمنې يې کښته پر غوږو باندې ځوړندې وي.

**غونډوری** (ğündúray) ص.نر.م. گردی، کلوله.

**غونډوس** (ğondós) نر.م. پنډوس، ټپکی، غونډوسکی، گيند، توپ.

**غونډوسکی** (ğündúskay) نر.م. وړوکی توپ، کوچنی پنډوس، کمکی ټپکی، وړ گيند.

**غونډول** (ğwandawál) مص.مت ۱) راټولول، جمع کول؛ ۲) کلوله کول، گردول.

**غونډه** (ğwánda) ښځ. م. ۱) ټولېدنه، مجلس؛ ۲) غونداری گردی کانی؛ ۳) دغونډ مؤنث.

**غونډه مری** (ğwándamaráy) ښځ. م. سره غاړه، وچه غاړه، وچه مری.

**غونډۍ** (ğwandáy) نر.م. ۱) غونډل، غوندک؛ ۲) د ورانه ده وکي سر؛ ۳) ښوی او غونډ کانی ٤) غونډکی، ټيټ قد؛ ٥) دغونډی مذکر.

**غونډۍ** (ğwanḍáy) ښځ.م. شاګۍ، پوټۍ، ډېرۍ، توپۍ، تپه، دخاورو او شګو جګه ډېرۍ.

**غونډېچر** (ğondečár) نر.م.ج. يو ډول نبات دی چې د ګندنې په څېر اوږده او کلکه پاڼه لري.

**غونډېدل** (ğwandedə́l) مص.ل. ۱) سره يوځای کېدل، راټولېدل؛ ۲) غونډاری کېدل.

**غونزاخې** (ğwanzā́xay) نر.م.و.ګ. غونځاښی.

**غونه** (ğū́na) ښځ.م. بڼه، سيکه، ګونه، څېره، جوله، بشره، شکل.

**غونی** (ğū́nay) نر.م. ۱) د وجود ويښتان؛ ۲) د بدن پوستکی؛ ۳) غونډې، څېر؛ ٤) د بد، ژړا او ...کليمو سره د لاحقې په توګه راځي. بدغونی؛ ۵) څېره، جوله، شکل.

**غونېښی** (ğūnesáy) ص.نر.م. خوږژبی، د ښه خوی او ښې ژبې څښتن.

**غوڼ** (ğūṇ) نر.م. ۱) بڼی، ګنهډنه؛ ۲) تيندوری، تنکی، د پوزې نازک هډوکی.

**غوڼاسکه** (ğūṇā́skạ) ښځ.م. ترپکې، خېزکې، غورځې پرځې، غورځېدنه او الوتنه.

**غوڼاسکی** (ğūṇáskay) نر.م. غوناشکی؛ ۱) ورروستی سلګی؛ ۲) مرې رواني اوبه.

**غوڼکی** (ğūṇkáy) نر.م. بنهار، بنګی، غونهار، په پوزه کې خبرې.

**غوڼه** (ğūṇá) صوت. ښځ.م. د خرخ او... د ګرځېدلو ضعيف او تيټ اواز.

**غوڼی** (ğūṇáy) ص.نر.م. ګوڼ ګونی، ګنګنی، بنګی، څوک چې په پوزه کې خبرې کوي.

**غوڼېدل** (ğūṇedə́l) مص.ل. ګوڼېدل، ګنهېدل، بنګی کول، په پوزه کې خبره کول.

**غوڼېژی** (ğūṇežáy) نر.م. غرغر، زونګ زونګ، ډونګ ډونګ.

**غوول** (ğowə́l) مص.مت. غېيل، وطي کول.

**غويباڼی** (ğwaybā́ṇay) نر.م. يو ډول نبات دی چې پلنه پاڼه لري.

**غوېجه** (ğwéjá) ص.نب. ۱) غوېږه، غوږ؛ ۲) کلک، غښتلی؛ ۳) سرپېښناکه.

**غويچ** (ğoyč) نر.م. ځنګلي خر.

**غويځرګ** (ğwayǰrág) نر.م. يو غرنی نبات دی.

**غوېره** (ğwéra) ښځ.م. ګورا خر، ګوره خر.

**غويډل** (ğwaydə́l) نر.م. ۱) ګابنور، غابنور، منډاوو؛ ۲) جګ غږ.

**غويډنګ** (ğwaydáng) نر.م. ارغوند، د غويي بېډې، د غوايي سپښته.

**غوېرګ** (ğwerág) نر.م. د شوق و شهوت رګ.

**غوېږنی** (ğwezánay) نر.م.و.ګ. غوږيچنه.

**غوېښکی** (ğwéskay) نر.م. ۱) جوکه، سويه، مېښه، سروهلی فصل.

**غوېلانه** (ğwelā́na) ښځ.م. غوېناره، يو ډول ګياه ده چې پاڼې يې خوړي او آبي ګل کوي.

**غويلنګ** (ğwaylə́ng) نر.م ۱) پيارمه، ورستانه، دومچې، ورروسته بلې؛ ۲) شانه.

**غويمنډ** (ğwaymánḍ) نر.م. ۱) ګڼ غوايان په يوه شي ګرځونه او د هغه شي کلکونه؛ ۲) په ګنو غواياتو درمند کلکول.

**غويمنډکول** (ğwaymánḍkawə́l) مص.مت. ۱) د ډېرو غوايانو په ګرځولو سره نرم ځای کلکول؛ ۲) غوبل کول.

**غويمه** (ğway má) ص.ښځ.م. هغه حالت چې غوا د غوايي دختلو شوق ولري.

**غوېناره** (ğwenā́ra) ښځ.م.و.ګ. غوېلانه.

**غويي** (ğwayáy) نر.م. (غوايان، غوايي) غوايي، غوڅکی، مشهور څاروی دی.

**غیاب** (ğıyā́b) نر.م. ۱) غایبېدنه، نیهامېدنه؛ ۲) ص. نب. پسې شا، الونیا.

**غیابي** (ğıyā́bi) ص. نب. نر. ښځ.م. ۱) دغیاب؛ ۲) ترشېټ، ترشا، په غیاب کې.

**غیاث** (ğyā́s) ص. نر.م. ۱) غاورسی، چاره گر، پوښتنه کوونکی؛ ۲) د الله تعالی یو نوم دی؛ ۳) نر.م. پناه غوښتنه، فریاد کول.

**غیب** (ğayb) ص. نر.م.ج. ۱) غایب؛ ۲) نیهام، پټ، ورک، پنا؛ ۳) له حقه اووښتی؛ ٤) سر، راز.

**غیبت** (ğaybát) نر.م. (ج. غیبتونه) ۱) شمت، ښتمیری، پسې شا بدویل.

**غیبگو** (ğaybgó) ص. نب. نر. ښځ.م. دا صفت یوازې الله ته ځانگړی دی، غیبگویه، څوک چې بې ځایه د غیب خبرې کوي.

**غیبه** (ğaybá) ښځ.م. ۱) د وهل شوو او تکېدلو مالوچو او وریو توپې؛ ۲) مالوچ، پنبه.

**غیبي** (ğaybí) ص. نر. ښځ.م.ج. ۱) دغیب؛ ۲) ناڅاپي، یو ناڅاپه، نابېره.

**غېجه** (ğeja) ص. ښځ.م. ۱) کلک و سخت ټوکر؛ ۲) کلک، غوټه؛ ۳) نر.م. غوجېره، غورېجه؛ ۲) گوراخر، غیره؛ ۳) د مزري د بوټي یو ډول.

**غېچ** (ğeč) د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**غیچکه** (ğicaka) ښځ.م. (مو.) غیږکه، غیژکه، غچکه، د پښتني ساز یوه دوه زره کلنه لرغونې آله ده چې سرینده ته ورته ده.

**غیچکه وهونکی** (ğičákawáhū́nkay) نر.م. غیچکه پرغوونکی، غیچکه والا، غچکه والا، غیچکه غږوونکی.

**غیر** (ğayr) ق. ص. مخ. ۱) ق. پرته، بې له، سوا؛ ۲) ص. پردی؛ ۳) بل شوک؛ ٤) ناروا، ناجایز؛ ۵) یو مختاړی دی چې د صفتو، اسمو ترمخه راځي او هغه نفي کوي.

**غیرت** (ğayrát) نر.م. ۱) همت، ننگه، مېړانه، زړورتیا؛ ۲) ناموس پالنه، پر ناموس درېدنه.

**غیرتمن** (ğayrátmən) نر.م.ج. غیرتي، غیرتناکه، غیرتمند، مېړنی، د ننگ و غیرت څښتن.

**غیرجانبدار** (ğáyrıjānıbdár) ص. نر.م.ج. ۱) ناپېیلی، بې طرفه؛ ۲) گوښې، ځانگړی.

**غیرحاضر** (ğayrhāzír) ص. نر.م.ج. ناسوب، غایب، د حاضر ضد.

**غیرحق** (ğáyrıháq) ص. نب. نر. ښځ.م. ناحقه، برناحقه، بې موجبه، بې حقه.

**غیرحیه** (ğárıhaya) ص. نب. نر. ښځ.م.ج. غیر ذیروح، بې ژونده، بې ساه.

**غیردیني** (ğáyrıdini) ښځ.م ۱) بې دیني؛ ۲) ص. نب. هغه څه چې له دین سره اړیکه نه لري.

**غیرذاتي** (ğáyrızāti) ص. نب. نر. ښځ.م.ج. غیراصلي، هغه څه چې په ذات اړه و نه لري.

**غیر ذیروح** (ğáyrızirṓh) ص. نب. نر.م.ج. بې اروا، بې روحه، غیر حیه، بې ساه.

**غیر زوجي** (ğáyrızawjí) ص. نر. ښځ.م. بې زوجه، بې جوړې، بې جفت، بې مېړه.

**غیرشعوري** (ğáyrışusuri) ص. نب. نر. ښځ.م. ۱) غیر ارادي، بې نیته؛ ۲) لاشعوري.

**غیر صحي** (ğáyrısıhí) ص. نب. نر.م.ج. ۱) د روغتیايي اصولو مخالف؛ ۲) ناولی، چټل.

**غیرطبیعي** (ğáyrıtabisí) نر. ښځ.م.ج. ۱) څه چې د طبیعت له اصولو سره سم نه وي؛ ۲) جوړ شوی، مصنوعي؛ ٤) الهونی؛ ۵) نابغه.

**غیرعضوي** (ğárısuzwí) نر. ښځ.م.ج. هغه مرکب چې له حیوان، نبات یا کوم ژوندي جسم څخه راپیدا شوی نه وي.

**غیرعلاقه** (ğáyrıʕalāqá) ښځ.م. پردی سیمه، پردی هېواد، د بل خاوره.

**غیرعیني** (ğáyrıʕayní) ص. نر. ښځ.م. ۱) هغه څه چې عینیت نه لري؛ ۲) ذهني.

**غیرفقاریه** (ğáyrıfaqārya) نر.ښځ.م. بې شمزۍ، بې د ملا د هډکو، چې هډوکي و نه لري.

**غیرقانوني** (ğáyrıqānūní) نر. ښځ.م. ۱) هغه څه چې پر قانون برابر نه وي؛ ۲) له قانون سره بې اړیکي؛ ۳) الغا، لغو؛ ٤) د قانون ضد.

**غیرقصدي** (ğáyrıqasdí) نر.ښځ.م.ج. بې ارادې، بې له نیته، هغه څه چې په ارادي توګه نه وي.

**غیر متجانس** (ğáyrımutajānís) نر.م. ناجنسه، هغه څه چې له بل شي سره په جنسیت کې يو نه وي.

**غیرمتحرک** (ğáyrımutaharík) نر.م. ناخوځند، هغه څه چې ولاړ یا د سکون په حال کې وي.

**غیرمترقبه** (ğáyrımutaraqıbá) ص. نب. نر.ښځ. م.ج. ناڅاپي، نابېره، ناګهانه.

**غیرمتناظر** (ğáyrımutanāzír) ص. نر. ج. هغه څه چې تناظر نه لري، بې تناسبه، بې هارمونۍ.

**غیرمحارب** (ğáyrımuharíb) ص. نر.م.ج. څوک چې د جنګ و جګړې نه وي.

**غیر محدود** (ğáyrımahdūd) ص. نر.م.ج. نامحدود، ناپایه، بېحده، لایتناهي، بې انتها.

**غیرمرتب** (ğáyrımuratáb) ص. نر.م.ج. بې نظمه، نامرتب، بې اوډنې، بې ترتیبه.

**غیرمرئي** (ğáyrımarıí) ص. نب. نر.ښځ.م.ج. نامريي، نامرئي، څه چې لیدل کېدای نه شي.

**غیرمستقیم** (ğáyrımustaqím) نر.م. ۱) ناسم، هغه څه چې سیده او نېغ نه وي؛ ۲) کوږ یا مات؛ ۳) کنایتاً، د کنایې په ډول پوهونه.

**غیرمسلح** (ğáyrımusaláh) نر. ښځ.م.ج. بې وسلې، بې اسلحې، تش لاسی.

**غیرمشبوع** (ğáyrımašbóʕ) نر.ښځ.م. نااشباع، نادکه، ناموړ.

**غیرمطلق** (ğáyrımutláq) ص.نر.م.ج. نامطلقه، د مطلق ضد، مقید، بند.

**غیرمطلوب** (ğáyrımatlūb) ص.نر.م. نامطلوب، څه چې د غوښتنې سره سم نه وي؛ بد.

**غیرمطمین** (ğáyrımutmaín) ص. نر.م.ج. ۱) بې باوره، غیر باوري؛ ۲) څوک چې په ځان یا په خپل کار باور نه لري؛ ۳) مج. خرابېدونکی.

**غیرمعمولي** (ğáyrımaʕmulí) ص.نب.نر. ښځ.م. نامعمول، غیرعادي، غیر ساده؛ د معمولي ضد.

**غیرمعیاري** (ğáyrımʕyarí) نر.ښځ.م.ج. ناسم، خراب، مادتاً یا کیفیتاً ښکته.

**غیرمکشوف** (ğáyrımakšūf) ص. نر.م.ج. ناکشفه، څه چې کشف او پېژندل شوي نه وي.

**غیرملفوظ** (ğáyrımalfūz) ص.نر.م.ج. هغه توری چې تلفظ نه شي، هغه خبره چې ویله شوې نه وي.

**غیرملک** (ğáyrımūlk) ص. نر.م. پردی وطن، پردی هېواد، د بل خاوره.

**غیر ملکي** (ğáyrımūlkí) نر.ښځ.م. ۱) نظامي، عسکري؛ ۳) پردی، بېګانه.

**غیرممکن** (ğáyrımumkín) ض. نر.م.ج. ۱) ناممکن، ناشونی؛ ۲) سخت، مشکل.

**غیرمنتظره** (ğáyrımuntazırá) نر.ښځ.م.ج. څه چې له تمې او انتظار پرته نابېره پېښ شي.

**غیرمنصفانه** (ğáyrımunsıfāná) ق. په بې انصافۍ؛ ۲) ص. نر.م. له انصاف څخه لیرې.

**غیرمنظم** (ğáyrımunazám) ص.نر.م ۱) نامنظم، بې نظمه، بې ترتیبه، ګډوډ؛ ۲) نامکمله.

**غیرمنقطع** (ğáyrımunqatí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) نه پرې کېدونکی، سره نښتی؛ ۲) بې ځنډه، بې وقفې.

**غیرمنقول** (ğáyrımanqúl) ص. نر. م. ج. نه وړل کېدونکی، څه چې د وړلو یا نقلولو وړ نه وي.

**غیرمولد** (ğáyrımoalíd) ص. نر. م. ج. تولید نه کوونکی، هغه څوک چې تولید نه کوي.

**غیرمهذب** (ğáyrımuhazáb) ص. نر. ج ۱) نامهذب، بې تهذیبه، بداخلاقه؛ ۲) بې تمدنه، بې فرهنګه.

**غیرنظامي** (ğáyrınızāmí) نر. ښځ. م. ج ۱) له نظام سره بې اړیکې؛ ۲) ملکي.

**غیرنوراني** (ğáyrınūrāní) نر. ښځ. م. بې ورانګې، بې روښنايي، بې نوره.

**غیرواجب** (ğáyrıwājíb) ص. نر. م. ۱) غیرلازم، غیرضروري؛ ۲) له واجبه پرته؛

**غیره**[1] (ğıyará) ښځ. م. ګوراخر، ځنګلی خر.

**غیره**[2] (ğáyrá) ص. نب. غیر؛ ۱) پردی، غیر، بېګانه؛ ۲) وغیره، نور، بل.

**غېږ** (ğéz) ښځ. م. نر. م. ۱) غېږه؛ ۲) لمن؛ ۳) کوشتي، پهلواني، پلاندي کول.

**غېږ ایستل** (ğézıstál) مص. مت. غېږ نیول، غېږ ورتلل، غېږه نیول، پهلواني کول.

**غېږ باس** (ğézbás) نر. م. ص. غېږ ایستونکی، د غېږې ماهر، غېږباس، پهلوان.

**غېږباسي** (ğézbāsí) ښځ. م. غېږ ایستنه، غېږ نیول، پهلواني، غېږې نیونه.

**غېږ پرانیستی** (ğézprānistay) په پرانیستې غېږې سره، هرکلی کوونکی، سترګې په لاره.

**غېږ په غېږ** (ğézpagéz) ق. غېږه په غېږه، په غېږ کې، سینه په سینه، تېتر په تېتر.

**غېږ روغبړ** (ğézrōğbar) غاړه غړي، ستړي مه شي، غاړې وتنه، معانقه.

**غېش لاسی** (ğešlásay) نر. م. وسله وال، څوک چې وسله په لاس کې لري.

**غېش وله** (ğešwála) ښځ. م. یو ډول سره وله ده چې په خپله راشنه کېږي.

**غېشی** (ğéšay) نر. م. و ګ. غشی.

**غېل** (ğel) نر. م. ۱) له کړاو او ضرر څخه خپل ځان په چل و فریب خلاصونه؛ ۲) غوجل، غویلی.

**غېلان** (ğelán) نر. م. د تېلو د ګانۍ منځنی تیر چې سولېدلی وي او کنجاره سمه ایستلی نه شي.

**غېلې** (ğéle) ښځ. م. ۱) رمه، ګله؛ ۲) د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**غینجه** (ğínjá) ښځ. م. تریکې، توپونه، خیزونه.

**غیندوک** (ğindúk) ص. نر. م. ج. غینهور، غینده، غیندی؛ څوک چې د بر غووه کوي.

**غیندی** (ğindáy) ص. نر. م. و ګ. غیندوک.

**غینډی** (ğínday) نر. م. تنۍ، بتن.

**غین** (ğin) نر. م. د ګه، غین، د نارینه تناسلي آله.

**غینه چوری** (ğinačúray) نر. م. ۱) د پسه غین، د ګډ غین؛ ۲) یو ډول لوبه ده.

**غیور** (ğayúr) ص. نر. م. ج. ۱) د بر زړور؛ ۲) ناموس پال؛ ۳) سالک.

# ف

**ف** (fe) ښځ.م. د پښتو الفبې يو دېرشم توری دی. ابجدي ارزښت يې «۸۰» دی.

**فا** (fā́) نر.م.ښځ.م(مو.) د سي ماژور دسکيل څلورم نوټ يا تون.

**فابريکه** (fābrika) ښځ.م. فابريک، کارخانه، صنعتي موسسه، فکتري.

**فاتح** (fātíh) ص. نر.م. ج. ۱) سوبمن، بريالی، کاميابه؛ ۲) فتح کوونکی؛ ۳) خلاصوونکی.

**فاتحه** (fātıhá) ښځ.م. ۱) لومړی، د کار پيل؛ ۲) بخښښه؛ ٤) دعا؛ لاس نيول.

**فاجر** (fājír) ص.نر.م. ج. ۱) گناگار، گنهکار؛ ۲) زنا کوونکی، زناکار.

**فاجعه** (fājıʿá) ښځ.م. (ج. فاجعې) لوی غم، ستر مصيبت؛ ۲) سخته، ناوړه پېښه.

**فاحش** (fāhíš) ص. نر.م. ۱) ناوړه، بد؛ ۲) تر حد تېر، له حده وتلی؛ ۳) څرگند.

**فاحشه** (fāhisá) ص. ښځ. م. د فاحش مونث؛ ۱) دېره ناوړه چاره، بد کار؛ ۲) کاسيره، لنډۍ.

**فاخر** (fāxír) ص. نر.م. ج. ۱) وياړونکی، فخر کوونکی.

**فارغ** (fārıǵ) ص.نر.م. ۱) وزگار؛ ۲) آرام، آزاد.

**فارغ البال** (fārıǵolbāl) نر.م. ډاډه، آرام، آسوده خاطر؛ ۳) بې خبر؛ ٤) بې نياز، مستغني.

**فارالتحصيل** (fārıǵutahsíl) ص.نر.م.ج. وتلی، له تحصيله خلاص، چا چې د زده کړو ټاکلې دوره سرته رسولې وي.

**فارغول** (fārıǵawál) مص.مت. ۱) وزگارول، خلاصول؛ ۲) آرامول، آزادول.

**فارغېدل** (fārıǵedә́l) مص. ل. ۱) وزگارېدل، خلاصېدل؛ ۲) بې غمه کېدل، آرامېدل.

**فارقه** (fārıqá) ص. نب. ۱) بېلوونکی، توپير کوونکی؛ ۲) د حق و باطل بېلوونکی.

**فارم** (fā́ram) نر.م. ۱) کبنت، کروندہ؛ ۲) هغه ځمکه چې د ژوبو د روزلو او کبنت لپاره وي.

**فارماکولوجي** (fārmākolojí) ښځ.م. درمل پېژندنه، دارو پېژندنه.

**فارمول** (fā́rmōl) نر.م. فورمول، فرمول، ۱) دالجبري سمبولو یو جونګ؛ ۲) د سمبولو او عددو په یو ځای کولو سره د یوه ترکیب د جوړښت افاده؛ ۳) نسخه، دستور؛ ٤) رمز؛ ٥) نمونه؛ ٦) د کلیمو یو ټاکلی فورم.

**فارمېشن** (fārmešə́n) نر.م.و.ګ. فورماسیون.

**فارمیکا** (fārmiká) ښځ.م. ۱) یو ډول پلاستیکي ماده ده چې د تودوخې او کیمیاوي موادو په مقابل کې مقاومت لري.

**فارورډ** (fārwárḍ) نر.م. مخکښ، د باسکتبال، هاکی، فوتبال په لوبو کې هر هغه لوبغاړی چې په مخنۍ کرښه کې وی.

**فارورډ پالیسي** (fārwarḍpālicí) ښځ.م. د پرمختګ پالیسي، ښکېلاکي تګلاره.

**فاروق** (fārúq) ص. نر.م.ج. بېلوونکی، تمیز کوونکی؛ د حق و باطل جلا کوونکی.

**فاسد** (fāsíd) ص.نر.م.ج. ۱) ګار، وران، ویجاړ؛ ۲) خوسا، وروست؛ ۳) خراب، له لارې وتلی.

**فاسدول** (fāsıdawə́l) مص.مت ۱) ګارول، ورانول؛ ۲) خوسا کول، ورستول؛ ۳) له لارې ویستل، خرابول.

**فاسدېدل** (fāsıdedə́l) مص.ل ۱) بدېدل، ګارېدل؛ ۲) خوساکېدل، ورستېدل؛ ۳) له لارې وتل.

**فاسق** (fāsíq) ص. نر.م.ج. بدکار، بدلاری، بدلامی، ګناکار.

**فاسولیا** (fāsolyá) ښځ.م. یو ډول نبات دی.

**فاسیل** (fāsíl) نر.م.و.ګ. فوسل.

**فاصل** (fāsíl) ص. نر.م. ۱) بېلوونکی، بېلوونی؛ ۲) پوله، حد.

**فاصله** (fāsılá) ښځ.م. واټن، د دوو شیانو ترمنځ مسافه یا ځه چې د دوو شیانو ترمنځ وي.

**فاضل** (fāzíl) ص. نر.م.ج (ج. فاضلان، فضلاء) فضیلتمند؛ ۲) زیاتېدونکی؛ ۳) تر نورو په علم کې لوړ؛ ٤) د هنر ښښتن؛ ٥) ډېر، زیات؛ ٦) غوره؛ ۷) د اهمیت وړ.

**فاضله** (fāzılá) ص. ښځ.م. د فاضل مؤنث، په فضل کې اوچته.

**فاعل** (fāsíl) فا.نر.م.ج. ۱) کوونکی، کړونکی، کړونی، د عمل اجرا کوونکی؛ ۲) بنا، کارګر.

**فاعلي** (fāsılí) ص. نب. نر. ښځ.م.ج. ۱) د فاعل په فاعل اړوند؛ ۲) فاعلیت، داسې حالت چې نوم په کې فاعل وي.

**فاعلیت** (fāsılyát) نر.م. ۱) فاعلتوب، فاعلوالی؛ ۲) ص. نر.م. فاعلي.

**فاکولته** (fākwəltá) ښځ.م (ج. فاکولتې) پوهنځی، په پوهنتون کې د زده کړې هره لویه څانګه چې نورې کوچنۍ څانګې ولري.

**فال** (fāl) نر.م. پال؛ ۱) شګوم، شګون، د عاقبت او نتیجې په اعتبار یوه پېښه په ښه یا بده نیول؛ ۲) وراندوینه؛ ۳) مرغ، بخت، طالع.

**فال بین** (fālbín) نر.م.ج. (ج. فال بینان) پال بین، بنګوړک، فال کتونکی، فال لیدونکی.

**فالج** (fālíj) نر.م.و.ګ. ګوزڼ.

**فال کتنه** (fālkatə́na) ښځ.م. فال لیدنه، طالع معلومونه، د کومې ستونزې په اړه وراندوینه.

**فالوده** (fālúda) جن. ښځ.م. یو ډول خوندور خواړه دي؛ له شربتو او واورې څخه جوړ شوي خواړه.

**فالېز** (fāléz) نر.م.و.ګ. پالېز.

**فام** (fām) ور. غوندي، په څېر، په ډول، وزم، وشم، بخن، وېره؛ يو وروستاړی دی.

**فاميل** (fāmíl) نر.م. ۱) کورنی، کهول، خاندان؛ ۲) والدين او ددوی کوچنيان.

**فاميلي** (fāmilí) ص. نب. ۱) کورنی، د کورنی، فاميل ته منسوب؛ ۲) ښځ.م. کورنی، فاميل.

**فانتېزي** (fānṭezí) ښځ.م. فانتيزي؛ ۱) خيال، تصور؛ ۲) هوا، هوس؛ ۳) تجملي شيان.

**فانوس** (fānús) نر.م. له فلزو، ښيښو يا کاغذو څخه جوړ کړی شوی څراغ چې دننه بله کړې شمع يا څراغ په کې ايږدي.

**فانه** (fāná) ښځ.م. څپنی، چنی، پانه، سپيته، شپيته.

**فاني** (fāní) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) نېستېدونی، فنا او زوال لرونکی؛ ۲) بې ثباته؛ ۳) بوډا.

**فايبر** (fāybár) نر.م. فيبر، ۱) تار، رېښه، نسج؛ ۲) يو ډول پنډه مقوا ده چې د ځنګله له لرګو تهيه کېږي او په ترکانۍ کې کارېږي.

**فايده** (fāydá) ښځ. م. (ج. فايدې) فـانده، ګټه، اوګه، برغه، نفع، مفاد.

**فبها** (fābıhá) صوت. لا ښه، څومره ښه، نولا ښه.

**فتاح** (fatáh) ص. نـر.م.ج. پـرانيسـتـونکی، خلاصوونکی، د الله(ج) يو نوم، مرستيال، حاکم.

**فتح** (fátha) ښـځ.م. (ج. فتحې، فتوحـات) ۱) پرانيستنه، خلاصونه؛ ۲) بـری، کاميـابي؛ ۳) زور نصب، د عربي له درېو حرکاتو څخه يو حرکت (ـَ) دی.

**فتراک** (fıtrāk) نـر.م. د اس د زين تر شا څرمني تسمه چې شيان ورپورې تړي. د اس د زين تر شا کنجوغه.

**فجيع** (fají؛) ص. نر.م. دردناک، زړه دردوونکی.

**فجيعه** (fajisá) ښځ. م. نـاتـار، مـصيبت، زړه درووونکې پېښه.

**فحاش** (fahā́š) ص.فا.نر.م.ج. ۱) پوچ خولی؛ ۲) د بد خويه؛ ۳) بد اخلاقه، زنارکار.

**فحش** (fáhaš) ښځ.ج. ۱) ښکنځل، کنځل، زيارې؛ ۲) بده خبره؛ ۳) بد کار، بد عمل.

**فحشا** (fahšā́) ښځ. م. ۱) ګناه، ناوړه عمل، له حده وتلې بدي؛ ۲) زنا؛ ۳) بدلامي، بدکاري.

**فحوا** (fahwā́) ښـځ.م. فحوی، مانا، مضمون، د خبرې مفهوم.

**فخر** (fáxər) نـر.م. ۱) وياړ، سر لـوړی، نازېدنه؛ ۲) لويي، غرور.

**فدا** (fıdā́) ص. نب. جار، ځار، قربان، واری.

**فداکار** (fıdākár) فا.ص.نر.م.ج. فدايي، سرباز، سرتېری، قرباني ورکوونکی.

**فديه** (fıdyá) ښځ.م. (ج. فديې) فديت؛ ۱) سربها، هغه مال چې د ځان ژغورنې لپاره يې ورکوي؛ ۲) تاکلې غله يا بيه ده چې د لمانځه، د قضايي او روژې خوړلو په مقابل کې ورکول کېږي.

**فدرال** (fıḍrā́l) ص. نر.م. ج. فدرالي، ائتلافي؛ د پيمان په وسيله جـوړ شـوی په تېره د دولتو او ګروپو.

**فراق** (fırā́q) نر.م. ۱) بېلتون، هجران لېږې توب؛ ۲) د مين و مينې بېلتون.

**فراقژن** (fırāqžán) نـر.م. بېلتون وهلی، هجر ځپلی، هجران شوی.

**فراکسيون** (frāksıún) نر.م. ۱) ل. م. کسر، درز؛ ۲) تـوک، جـز، بـرخـه؛ ۲) اص. د واحـدې عقيدې يو ډله.

**فراواني** (fırāwāní) ښځ.م. زياتوالی، د برېښت، پرېماني، پرېواني، زياتوب، هوساينه.

**فرج** (farj) نر.م. ۱) سوري، درز، د انسان د شا یا مخې سوري؛ ۲) دښځې عورت، شرم ځای.

**فرح** (faráh) ښځ.م. خوښي، خوشالي، ښادېدنه.

**فرحت** (farhát) نر.م. خوښي، ښادي، خوشالي.

**فرد** (fard) نر.م. ۱) وګ. شخص؛ ۲) ق. یوازې، تنها؛ ۳) ص. بې ساري؛ ٤) اد. د شعر یو بیت.

**فردوس** (fırdáws) نر.م. ۱) بڼ، باغ؛ ۲) جنت.

**فردي** (fardí) ص. نر. ښځ. م. ج. ۱) په فرد اړه لرونکی، د فرد، په فرد اړوند؛ ۲) شخصي.

**فرديت** (fardıyát) نر.م ۱) یوازې والی، ځانله والی؛ ۲) فل. د فرد اصالت، د فردي استقلال اصول.

**فرسخ** (farsáx) نر.م. فرسنګ، زردانګی، کروه؛ د نږدې شپږو کیلومترو هومره مسافې مقیاس.

**فرش** (farš) نر.م. (ج. فرشونه) ۱) بچاونه، په کور کې د ناستې سامان؛ ۲) اوار، هوار.

**فرشته** (farıštá) ښځ.م. پرښته، ملایکه، پرشته.

**فرشول** (faršawə́l) مص. مت. ۱) غوړول، ویړول، د فرش اوارول؛ ۲) دکوټې یا غولي مخ په خښتو یا تیږو... پوښل؛ ۳) مج. ښه وهل او ډربول.

**فرشېدل** (faršedə́l) مص. ل. ۱) اوارېدل؛ ویړېدل (تغر، غالۍ)؛ ۲) دکوټې یا غولي مخ پر ډبرو یا خښتو پوښل کېدل؛ ۳) مج. ښه وهل کېدل.

**فرصت** (fursát) نر.م. ۱) وار، وخت، موقع؛ ۲) فراغت، وزګار وخت لرنه.

**فرصت طلبي** ([illegible]sáttalabí) ښځ.م. ابن الوقتي، اوپرتونیزم، خپلو اعمالو، امک[illegible] او خبرو ته له شرایطو سره سم د سمون ورکولو پالیسي.

**فرض** (farz) ص. نر. م. ج. (ج. فرضونه، فرایض) ۱) واجبه او لازمه چاره؛ ۲) د الله حکم؛ ۳) هغه څه چې ادا یې پر هر مسلمان بانديې په قطعي دلیل ثابته شوې وي.

**فرضاً** (fárzán) ق. د فرض په توګه، په فرضي ډول.

**فرضول** (farzawə́l) مص. مت. ۱) لازمول، واجبول؛ ۲) ګڼل، انګېرل، د فرض په توګه منل.

**فرضي** (farzí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) په فرض اړوند؛ ۲) تصوري، اټکلي، فرض شوی.

**فرضېدل** (farzedə́l) مص. ل ۱) لازمېدل، واجبېدل؛ ۲) تصور کېدل، د فرض په توګه منل کېدل.

**فرضيه** (farzıyá) ښځ.م ۱) حدس، ګومان، قیاس، تصور؛ ۲) هایپوسیس؛ په میتودولوجي کې یوه ناثابته شوې تیوري، قضیه.

**فرع** (fárʕa) ښځ.م. فرعه، ۱) څه چې له اصله بېل شي؛ ۲) څانګه، ښاخ؛ ۳) سود؛ ٤) نسل، توکم؛ ٥) اغېز؛ ٦) نتیجه.

**فرعي** (farʕí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) غیر اصلي، له اصله بېل شوی؛ ۲) په فرع اړوند، د فرع.

**فرق** (farq) نر.م ۱) توپیر، بېلوالی، تفاوت؛ ۲) تمیز ۳) سر؛ ٤) په سر کې د وېښتانو لاره ایستنه.

**فرقان** (furqā́n) نر.م. ۱) قرآن کریم؛ ۲) دحق و باطل بېلوونکی.

**فرقت** (furqát) نر.م. بېلتون، فراق، لېرېوالی.

**فرقوي** (fırqawí) ص. نب. نر. ښځ. م. د فرقې، د شعبې، دګوند، ډله ییز.

**فرقه** (fırqá) ښځ.م. ۱) ډله، جمعیت؛ ۲) مذهبي ډله؛ ۳) عس. د دریو غونډونو یو تشکیل دی.

**فرقه مشر** (fırqámášər) نر.م. هغه برید جنرال یا تورنجنرال چې د یوې فرقې په رأس کې وي.

**فرلانګ** (farláng) نر.م. فرلنګ، د یوه میل اتمه برخه چې ۱۲۵، ۲۰۱ متره کېږي.

**فرمان** (farmā́n) نر.م. ۱) حکم، امر، هغه حکم چې د هېواد مشر یې صادروي؛ ۲) د پاچا لاسلیک؛ ۳) اجازه.

فرماندار (farmāndā́r) نر.م.ج. ۱) حاکم، د ښار حکمران؛ ۲) فرمان ورکوونکی.

فرمان وړونکی (farmānwṛū́nkay) نر.م. ۱) فرمان برداره، تابع؛ ۲) څوک چې فرمان رسوي.

فرمایش (farmāyiś́) نر.م. فرمایښت؛ ۱) امر، حکم، دستور؛ ۲) سپېي.

فرمایشي (farmāyiśī́) ص.نر.ښځ.م. فرمایښتي؛ ۱) په فرمایش اړوند؛ ۲) له غوښتنې سره سم.

فرمایل (farmāyә́l) مص. مت. ۱) حکم ورکول، دستور ورکول؛ ۲) نوازش او عنایت کول.

فرمول (furmū́l) نر.م. وګ. فارمول.

فرن (fәrn) نر.م. وګ. سرخس.

فرني (fırnı́) جن. وګ. پرنې.

فروع (furṓʕ) نر.ج. ۱) د «فرع» جمع؛ ۲) دادب دڅانګو په تصنیف کې چې اصول او فروع وو، په فروع کې خط، انشاء، بدیع، او... شامل وو.

فرهنګ (farhә́ng) نر.م. ۱) وګ. کولتور؛ ۲) وګ. ډیکشنري؛ ۳) پوهه، علم، معرفت؛ ٤) ادب؛ ٥) تعلیم او تربیت؛ ٦) د یوه ملت علمي او ادبي آثار؛ ۷) معارف.

فرهنګ پوهنه (farhә́ngpōhә́na) هڅوپپوهنه.

فرهنګي (farhә́ngı́) ص. نب. وګ. کولتوري.

فرهنګیالی (farhә́ngyā́lay) نر.م. دودیالی، فرهنګیال، فرهنګي.

فریاد (faryā́d) نر.م. ۱) ناره، سوره، چیغه، کوکه؛ ۲) غاو، شکایت؛ ۳) زګېروی.

فریادي (faryādı́) فا.نر.م. ۱) څوک چې فریاد کوي؛ ۲) شکایت کوونکی.

فرېب (farḗb) نر.م. ۱) مکر، حیله، چل؛ ۲) په چل او دوکې او فرېب سره غافلېدنه یا غافلونه؛ ۳) طلسم.

فرېبکار (farebkā́r) ص.نر.م.ج. فرېبګر، چمباز، دروهلی، غولوونکی، فرېبي، تګمار، چلولي.

فرید (farı́d) ص. نر.م.ج. ۱) یکه، یوازې؛ ۲) بې ساري، بې مثله، ممتاز.

فرېز (frez) نر.م. فراز؛ ۱) عبارت، تکمیلوونکی عبارت؛ ۲) ترکیب (فقره؛ ۳) جمله، کلام.

فرېزیالوجي (frezyālojı́) ښځ.م. ۱) د خبرو کولو یا لیکلو لاره؛ ۲) ډیکتې؛ ۳) دلغاتو چاڼ.

فریضه (farizá) ښځ.م. ۱) څه چې پر انسان باندې فرض او واجب شوي وي؛ ۲) هغه واجبه چاره چې باید ترسره شي لکه: لمونځ، روژه او نور.

فریق (farı́q) نر.م. ۱) ډله، جمعیت، طایفه.

فرېکونسي (frekwәnsi) ښځ.م. فرېکانس؛ ۱) تکرار؛ ۲) فز. داهتزازو یا سایکلو شمېر د وخت په یوه واحد کې.

فرېم (frim) نر.م. ۱) چوکاټ؛ ۲) د بدن اسکلېټ؛ ۳) طرح، شکل، تنظیم.

فزیک (fızı́k) نر.م ۱) وګ. فزیکس؛ ۲) طبیعت؛ ۳) له ناروغۍ څخه د رغولو علم؛ ٤) علاج.

فزیکس (fızı́ks) نر.م. فیزیک، فزیک، فزیکس؛ طبیعي پوهنه یا طبیعي فلسفه.

فزیکي (fızikı́) ص. نب. نر.ښځ.م.ج. فیزیکي؛ ۱) مادي، جسماني، عیني، آفاقي، طبیعي؛ ۲) د فزیک، په فزیک اړوند؛ ۲) دطبیعي علم یا فلسفي.

فزیوکراټ (fızyokrā́ṭ) نر.م.ج. د فزیوکراسی په اقتصادي تیورۍ معتقد، (طبیعیون).

فزیولوجي (fızyolojı́) ښځ.م. طبیعي علم، د نبات او ژوي د حیاتي وظایفو مطالعه.

فساد (fasā́d) نر.م. ۱) پېلات، شر؛ ۲) تباهي، ویراني؛ ۳) فتنه؛ ٤) زیان؛ ٥) دښمني.

**فستیوال** (fistiwā́l) نر.م. ۱) د جشن یا نمانځلو یو وخت په تېره بیا چې مذهبي اودوره یي وي؛ ۲) د هنري آثارو یا د هنرمند ځو ننداري.

**فسخ** (fásxa) ص. نب. نسر. ښځ. م.ج. ۱) زایل؛ ۲) مات، بهل بهل؛ ۳) باطل (بیعه، هدف...).

**فسخېدل** (fasxedál) مص.ل. فسخ کېدل، باطلېدل، زایلېدل، ورانېدل.

**فسق** (fisq) نسر.م. ۱) دخدای له حکم څخه وتنه؛ ۲) زنا؛ ٤) گناه، بدکار..

**فسون** (fisún) نر.م. وگ. افسون.

**فشار** (fišā́r) نر.م ۱) زورنه، په یوه شي زور راوړل؛ ۲) نښتېځنه؛ ۳) زور و قوت چلول؛ ٤) د وینو فشار؛ د انسان د زړه ضربان.

**فصاحت** (fasāhát) نسر.م. ۱) د خبرو رواني؛ ۲) ښه او تېره ژبه؛ ۳) بیان؛ ٤) ظهور.

**فصل** (fásəl) نر.م. ۱) بېلونه؛ ۲) کښت؛ ۳) خنډ، مانع؛ ٤) بند؛ ۵) باب، څپرکی؛ ٦) موسم.

**فصلي** (fasli) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. د فصل، د موسم، موسمي.

**فصیح** (fasíh) ص. نر.م. ج. پر فصاحت برابر ړد ښه بیان خاوند، ژبه ور.

**فضا** (fazā́) ښځ.م. فضاء؛ ۱) پراخه ورشو، پراخه ځمکه؛ ۲) هوا؛ ۳) هغه مکان چې د ځمکې کره او هوا دهغه په یوه برخه کې واقع دي؛ ۵) محیط.

**فضانورد** (fazānawárd) ص. نر. م. څوک چې په یوې تخنیکي وسیلې سره په فضا کې گرځي.

**فضایل** (fazā́yil) نر.ج. فضائل، د فضیلت جمع.

**فضایي** (fazā́yi) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. د فضا، په فضا اړوند، په فضا پوري تړلي.

**فضل** (fázal) نر.م ۱) بخښنښ؛ ۲) نېکي، احسان؛ ۳) کمال؛ ٤) غوره والی.

**فضل فروشي** (fazalfroší) ښځ.م. په پوهه او فضل کې ځان ښکاره کول؛ تظاهر.

**فضله** (fuzlá) جن. ۱) غوَل، خوشایي؛ ۲) مردار شیان؛ ۳) پاتې شوني.

**فضول** (fuzū́l) نر.م. ۱) زیاتوب؛ ۲) څه چې له بدن څخه خارج شي؛ ۳) ص. نر.م. اېلتې ویونکی.

**فضول خرڅ** (fuzūlxárc) ص. نسر.م.ج. څوک چې بې ځایه او په چتې شیانو پیسې لگوي.

**فضولي** (fuzūlí) ښځ.م. ۱) د نورو په چارو کې لاسوهنه؛ ۲) اپلاکې ویل، اپلتې ویل.

**فضیحت** (fazihát) نر.م. عیب، رسوایي، بدنامي.

**فضیلت** (fazilát) نر.م. ۱) غوره والی، ښېگنه، ۲) په پوهه او معرفت کې زیاتوالی.

**فضیلتمآب** (fazilátmaáb) نسر.م. ۱) د فضیلت مقام؛ ۲) پخواني درنښتي عنوان و.

**فطر** (fítər) نسر.م. روژه ماتی؛ د فطر صدقه: هاکلې پیسې دي چې د روژې په پای کې اړو کسانو ته ورکول کېږي.

**فطرت** (fitrát) نسر.م. ۱) طبیعت، ختته؛ ۲) پنځ، پیدایښت؛ ۳) ابداع، اختراع.

**فطرتاً** (fitratán) ق. طبیعتاً، ذاتاً، اصلاً.

**فطري** (fitrí) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. ۱) فطرت ته منسوب؛ ۲) ذاتي، جبلي، طبیعي، فطرتي.

**فطریات** (fitriyā́t) نر.م. ۱) طبیعیات، ذاتیات، جبلي صفات؛ ۲) من. د برهان یو اصل دی.

**فعال** (faʕā́l) ص. نر.م. ج. کراوو، تکړه، پرکار بوخت، د هر کار کوونکی.

**فعالانه** (faʕālāná) ق. په فعال صورت، عملاً، په جدیت سره.

**فعالیت** (faʕāliyát) نر.م ۱) زیار، هاند، کوښښ؛ ۲) کار، چار، عمل؛ ۳) جدیت، تکړه والی.

**فعل** (fíʕl) نـر.م. (ج. فعلـونه،افـعـال) ۱)چـار، کار، چاره، کردار، عمل؛ ۲)گر. کړ، هغه کلیمه چې د مهال په چوکاټ کې د یوه څه پیښېدنه څرګندوي.

**فعلاً** (fíʕlán) ق. ۱) اوس، همدا اوس، دغه آن؛ ۲)د فعل له مخې.

**فعلي** (fıʕlí) ق. ۱) اوسنی، موجود، پرخپل حال؛ ۲) ص. نب. نر. ښځ. م. (گر.) په فعل اړوند.

**فقار** (faqā́r) نر.م. ج. فقاره، ګوجرکی (کرۍ)؛ د شمزۍ هډوکی، د ملا د تیر هډوکی (مهره).

**فقاريه** (faqāryá) ص. نب. نر. ج. و گ. شمزۍ.

**فقاهت** (faqāhát) نـر.م. فقیه والی، پوهېدنه، دانایي؛ د شریعت په احکامو پوهېدنه.

**فقدان** (fuqdā́n) نر.م. ۱) ورک کېدنه، ورکېدنه؛ ۲) له لاسه ورکول.

**فقر** (fáqar) نر.م ۱) نشتوالی، تنګ لاسی؛ ۲)اړتیا او احتیاج لرنه؛ ۳) لاس نیونه، ګدایي.

**فقرالدم** (faqrūdám) نر.م (طب.) د وینې کموالی، د وینې کمښت، اینمیا؛ یوه ناروغي ده.

**فقره** (faqará) ښځ. م. ۱)د ملا د تیر (شمزۍ) هر بند (ګوجرکی)؛ ۲)(گر.) نیمګړې جمله.

**فقط** (faqát) ق. یوازې، تنها، منحصراً، همدومره.

**فقه** (fíqa) ښځ.م. ۱) پوهه، فهم، پر یو څه خبرتیا؛ ۲)هغه علم چې د عبادتو او معاملو متضمن وي چې هغه دواړه په قرآن مجید او نبوي سنت کې راغلي وي.

**فقها** (fuqahā́) نر.ج. فقها، د فقیه جمع، پوهان، علما، عالمان.

**فقيد** (faqíd) ص.نر.م. ورک، له لاسه وتلی، مفقود.

**فقير** (faqír) نر.م.ج. ۱) درویزګر، لاس نیوونکی، ګدا؛ ۲)اړ، خوار، نېستمن، بېوزلی.

**فقيه** (faqíh) ص. نـر.م. ج. (ج.فقها) عـالم، پوه، په شرعي احکامو پوه.

**فكاهي** (fakāhí) ښځ.م. ټوکه ټکاله، ټوکه، دوړه.

**فكټ** (fákṭ) نـر.م. (ج. فکټونه) ۱)واقعیت، حقیقت؛ ۲) رښتین واله، ریالیستي.

**فكټور** (faktór) نر.م. ۱)عوامل، مؤثر؛ ۲)جن. ژن، دارثي صفتو د انتقال عامل؛ ۳)صورت حساب، د خرڅلاو یادښت.

**فكر** (fíkar) نـر.م. ۱)اند؛ د ذهن ټول حوادث؛ ۲)عقل، فهم؛ ۳)چورت، سوچ؛ ٤) پام، ځار.

**فكراً** (fíkrán) ق. له فکري نظره، د فکر له مخې، د سوچ له مخې.

**فكرجن** (fıkarján) ص. نر.م. فکرمن، چورتي، په فکر کې، په چرت کې، فکر وهونکی.

**فكري** (fıkrí) ص. نب. نـر.ښځ. م. ۱)له فکر سره تړلی؛ ۲) و گ.فکرجن، ۳)ځارن، مراقب.

**فكشن** (fıkšā́n) نر.م. ۱)خیالي شی، وهمي شی؛ ۲)خیالي کیسه، داستان، افسانه...

**فلاجلاتا** (flājılātá) نر.م.ج. قمچینه لرونکی، د یو حجروي ګروپ چینجیانو یو کلاس دی.

**فلاح** (faláh) ښځ.م. ۱)خلاصون، ژغورنه؛ ۲)بریالیتوب، کامیابي.

**فلاحت** (falāhát) نر.م. کرنه، کرهڼه، کر، بزګري، د کرکیلې کار.

**فلاش** (flāš) نر.م. فلش؛ ۱)ناڅاپي مختصره قوي رڼا؛ ۲)د برقي نور هغه آله چې پر کیمره باندې نصبېږي؛ ۳)په پټو کې یو ډول لوبه ده.

**فلاكت** (falākát) نـر.م. ۱) اسکېرنه، بدمرغي، مصیبت؛ ۲)ذلت، خواري.

**فلاكس** (flākís) نر.م.ج. پلاکیس، یو ډول ګل دی چې بېل بېل رنګونه لري.

**فلالین** (falālā́yn) نر.م. فللین، پلالین، یو ډول توکر دی.

**فلتر** (filtár) نر.م. یوه آله ده چې جامد مواد او کثافتونه له مایعاتو څخه بېلوي.

**فلج** (falj) ص. نر.م. ج. ۱) گوزڼ وهلی، د گوزڼ په ناروغۍ اخته؛ ۲) نر.م. د لاس او پښې بې حسي، د فالج ناروغي، گوزڼ. گوزڼه.

**فلډسپار** (fildspār) جیا. فل سپار، فلډسپاټ، هر یو د څو کریستالینی منرالو یا الومنیم سیلیکېټو څخه جوړ دی، کوارټز ته ورته دی او پر بشپنه باندې لیکه راکاږي.

**فلز** (filíz) نر.م. (ج. فلزونه، فلزات) د کیمیاوي عنصرو د ټولگي څینې غړي لکه اوسپنه، مس او... چې د تورق او هدایت قابلیت لري.

**فلزي** (filizxí) ص. ن. اوسپیز؛ ۱) په فلز اړوند؛ ۲) نر. ښځ. م. ج. له اوسپنې یا مسو او پولادو... څخه جوړ شوی شی.

**فلسفه** (falsafá) ښځ.م. ۱) حکمت؛ ۲) د تفکر او تعقل علم؛ ۳) د طبیعت شرحه او مطالعه؛ ٤) د ټولنیز شعور ځانگړی شکل.

**فلسفي** (falsafí) ص. نب. ۱) په فلسفه اړوند، د یوې فلسفي له اصولو سره سم؛ مج. پوه، عاقل.

**فلفل** (filfíl) نر.م. جن. پلپل، مرچ.

**فلک** (falák) نر.م ۱) اسمان، هسک؛ ۲) د سیارو مدار.

**فلکي** (falakí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) په فلک اړوند؛ ۲) ستور پېژندونکی.

**فلم** (fílam) نر.م. (ج. فلمونه) ۱) د انعطاف وړ سلولوزي موادو څخه جوړه شوې پاڼه یا فیته ده؛ ۲) سینما؛ ۳) مج. ظاهرسازي؛ ٤) ننداره.

**فلم اخیستنه** (filmaxistána) ښځ.م. ۱) د فلم نکولو هنر یا فن؛ ۲) فوتوگرافي.

**فلم جوړونه** (filmjoṛawána) ښځ.م. ۱) وگ. فلم اخیستنه؛ ۲) له صنعتي پلوه د فلم تهیه کول.

**فلوټ** (flū́ṭ) نر.م. شپېلۍ ته ورته شی.

**فلوریسنس** (flūrisáns) نر.م. داسې خاصیت چې د ریډیمېنټ انرژي په اثر رڼا کوي.

**فلیته** (falitá) ښځ.م. ۱) بوړی؛ ۲) پلته، باتی، پلیته.

**فلیل** (falíl) جن. عطر.

**فن** (fan) نر.م. (ج. فنون) ۱) صنعت، د تکنیکو، ورتیاو او قاعدو مجموعه؛ ۲) هنر؛ ۳) آرټ؛ ٤) طریقه، چلند؛ ۵) ډول، نوع.

**فنا** (fanā́) ص. نب. فناء؛ ۱) ورک، زوال، زایل؛ ۲) هلاک، مړ.

**فنان** (fanā́n) نر.م. د فن څښتن، هنرمند، فنکار، صنعتکار، آرټیسټ.

**فنجي** (fanjí) نر.م. د تبلو فایتا د ډلې یو گروپ نباتات دي چې پاڼې، گلان او شین رنگ نه لري.

**فنر** (fanár) نر.م. ۱) وگ. پنر؛ ۲) مج. چالاکه، فعال، چست وچالاک.

**فنري** (fanarí) ص.نب.نر. ښځ. م. ۱) فنر لرونکی، فنر والا؛ ۲) د فنر، په فنر اړوند.

**فنکار** (fankā́r) نر.م ۱) د فن څښتن، فن لرونکی؛ ۲) مج. سازچي، سندربول، سندرغاړی.

**فني** (fanī́) ص. نب.نر. ښځ. م. ج. ۱) په فن اړوند؛ ۲) د فن خاوند؛ ۳) ماهر، تجربه کار.

**فنیقیان** (faniqyā́n) نر.ج. سامي نژاده خلک چې د مدیترانې په څنډو کې مېشته وو. د سومریانو په مشکل لیک کې یې سمون راوست بیا یوناني لیک له فنیقي څخه منځ ته راغی. اوسنی اروپايي لیک هم د فنیقي پایڅوړ دی.

**فواره** (fawārá) ښځ.م. (ج. فـواري) ۱) چیرک، داره، داری، داوبو داره؛ ۲) فوټکېدونکې چینه.

**فواید عامه** (fawāyídisāmá) ښځ. م. ۱) عمومي ګټې، ټولنيزې ګټې؛ ۲) دعامه ګټو موسسه يا وزارت.

**فوټ** (fūṭ) نر.م. فټ، د طول يو مقياس دی چې ۱۲ انچه کېږي.

**فوټبال** (fūṭbāl) نـر.م. فټبال؛ هغه لوبه چې دوه ټيمونه يې د يوه توپ په وسيله د پښو په وهلو سره اجرا کوي.

**فوټبالر** (fūṭbālár) نـر.م. د فوټبال لـوبغاړی، فوټبال کوونکی، د فوټبال پلېير.

**فوټ نوټ** (fūṭnóṭ) نر.م. و ګ. لمن ليک.

**فوټو افسېټ** (foṭoāfsét) نر.م. د آفسېټ يوه قاعده ده چې دعکاسۍ فلم په چاپ کې کاروي.

**فوټوکاپي** (foṭokāpí) ښځ.م. فوټوستيټ، يوه آله ده چې د ليک پاڼو عکسونه اخلي.

**فوټوګراف** (foṭográf) نر.م. و ګ. عکس ۲).

**فوټوګرام** (foṭográm) نر.م. د عکاسۍ پاڼه.

**فوټومېټر** (foṭomíṭár) نـر.م (بر.) يوه آله ده چې د رڼا شدت پرې اندازه کوي.

**فوج** (fawj) نـر.م. (ج. فـوجونه) ۱) پوځ، لښکر، فرقه، پلټن؛ ۲) ډله، ګروپ.

**فوج دار** (fawjdār) ص. نر.م. ۱) عسکري صاحب منصب، د پوځ مشر؛ ۲) پوځ لرونکی.

**فوځ** (fawǰ) نر.م. (ج. فوځونه) و ګ. فوج.

**فوځي** (fawǰí) ص. نب. نـر. ښځ. م. ج. پـوځي؛ ۱) عسکري، نظـامي، فـوځ تـه منسوب؛ ۲) نر.م. (ج. فوځيان) عسکر، سرتېری.

**فوراً** (fáwrán) ق. ز. فوري، سمدلاسه، عاجل، د يو ان.

**فورم** (fóram) نر.م. فرم؛ ۱) شکل؛ ۲) څېره، بڼه، جوله؛ ۳) جوړښت؛ ٤) قالب؛ ٥) نوع، ډول؛ ٦) تنظيم؛ ۷) موقف، دريځ.

**فورماسيون** (formāsyún) نـر.م. فـارمېشن؛ ۱) فورم، شکل، بڼه؛ ۲) ترکيب، جوړښت.

**فورماليټي** (formāliṭí) ښځ.م. فـورماليته؛ ۱) رسميت، تشريفات؛ ۲) دود، دستور؛ ۳) ظاهري، ظاهر سازي.

**فورمليزم** (formalízam) نر.م. فورماليزم، وچه اصول پرستي، عنعنه پرستي، دودپالنه.

**فورمول** (fūrmūl) نر.م. و ګ. فارمول.

**فوري** (fawrí) ق. و ګ. فوراً.

**فوسل** (fosíl) نر.م. فوسيل؛ ۱) هره صخره يا منرال چې په کيندلو کې دځمکې څخه راوځي؛ ۲) جيا. د ژوندیو حيواني اونباتي موجوداتو آثار او پاتې شوني چې د ځمکې په پوړيو کې ښخ شوي وي.

**فـوق العاده ګي** (fawqulsādagí) ښځ.م. فـوق العاده تـوب، زېرتوب، تـر معمـول حد زياتوالی.

**فوق العاده** (fawqulsādá) ص. نب. تر عادت تېر، له عادت نه د باندې، تر معمول حد زيات.

**فوقاني** (fawaqāní) ص. نب. نـر. ښځ. م. ج. پاسنی، برنی، پورتنی.

**فوقيت** (fawqıyát) نر.م. ۱) تفوق، پورته والی، لوړوالی؛ ۲) ښه والی، غوره والی، زياتی.

**فوکس** (fokás) نر.م. فوکيس، محراق، هغه نقطه چې په هغې کې د حرارت او رڼا وړانګې يا د غږ څپې سره راغونډېږي يا له هغې څخه خپرېږي.

**فول** (fawl) نر.م (لو.) تېروتنه، تګي و برګي، هغه عمل چې د يوې لوبې له اصولو سره سم نه وي.

**فولاد** (folā́d) نر.م. جن. پولاد؛ یو کلک او سخت فلز دی.

**فولادي** (folādí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) په فولادو اړوند؛ ۲) له فولادو څخه جوړ شوی. ۳) خړ رنګ.

**فولکلور** (folklór) نر.م. فوکلور، دخلکو ادبیات، د خلکو فرهنګ، ولسي پوهه، دخلکو زده کړه، عامیانه آداب و رسوم، ولس پېژندنه.

**فولکلوري** (folklorí) ص. نر. ښځ. م. د فولکلور، په فولکلور اړوند، فولکلور ته منسوب.

**فولکلوریسټ** (folklorísṭ) نر.م. د ولسي پوهې متخصص، فولکلور پوه.

**فونوګراف** (fonográf) نر.م. د اواز ثبتولو آله.

**فونومیټر** (fonomiṭár) نر.م. یوه آله ده چې د اواز شدت او اهتزازي فریکونسي اندازه کوي.

**فونیټیک** (foniṭík) ص. نر.م. ج (ژ.ب) غږیز؛ ۱) د کلام د اوازو یا دغږو د تولید یا ثبت؛ ۲) د فونیټیکس؛ ۳) له تلفظ سره سم.

**فونېټیکس** (foneṭíks) نر.م. و ګ. غږ پوهه.

**فونیم** (foním) نر.م. (ژ.ب.) غږیز واحد، د یوې ژبې غږونه؛ د څو ډولو آوازو له یو ځای کېدو څخه یو اواز جوړېدل.

**فونیم پېژندنه** (fonimpežandána) ښځ.م. د صوتي واحدو علم، د ژبې د غږونو مطالعه.

**فونېمیک** (fonemík) ص. نر.م. ۱) د فونیم، پر فونیمو ولاړ؛ ۲) په فونېمیکس مربوط.

**فونېمیکس** (fonemíks) نر.م و ګ. غږ پوهه.

**فهرست** (fihríst) نر.م. نیو لیک؛ ۱) هغه جدول چې د دفتر د حسابو نومونه ثبتوي؛ ۲) هغه پاڼې چې د کتاب د مطالبو لنډیز یا فصلونه لیکي.

**فهم** (fáham) نر.م. ۱) درک کول، په څه پوهېدنه، ادراک؛ ۲) علم، پوهه.

**فهمول** (fahmawál) مص. مت. پوهول، په اشارې یا بیان سره څوک په یوه مطلب پوهول.

**فهمېدل** (fahmedál) مص.ل. پوهېدل، په اشارې یا بیان او توضیح سره په مطلب پوهېدل.

**فهیم** (fahím) ص. نر.م. ج. د فهم څښتن، فهم لرونکی، پوه، هوښیار.

**في** (fe) ښځ.م. د «ف» توري اواز او تلفظ.

**في** (fi) اد. په، پکې، دننه، دمکان او زمان ظرف دی.

**فیاض** (fayā́z) ص. نر.م. ۱) فیض رسوونکی؛ ۲) څوک چې زیات بخښښ کوي؛ ۳) داوبو ډکه ویاله یا چینه؛ ٤) مهربني، ځوانمرد.

**في البدیهه** (fílbadihá) ق. بې له فکر او تأمله، هغه شعر یا خبره چې بې تأمله وویله شي.

**في الحال** (fílhā́l) ق. سمدلاسه، سمدواره، ژر، بې تأمله، بې له ځنډه.

**في الحقیقت** (fílhaqiqát) ق. په رښتیا سره.

**في الفور** (fílfáwr) ق. و ګ. في الحال.

**في المثل** (fílmasál) ق. د مثال په توګه، د مثل په ډول، مثلاً.

**في الواقع** (fílwāqíʔ) ق. په رښتیا سره، په حقیقت کې، د حقیقت په ډول.

**فیته** (fitá) ښځ.م ۱) د اندازه کولو پیته؛ ۲) شرشره، کړه، کنګوره؛ ۳) کېسټ.

**فیټلیزم** (feṭalízam) نر.م. و ګ. قدر.

**فیچر** (fičár) نر.م. ۱) څېره، شکل؛ ۲) په راډیويي پروګرامو کې د یوې مهمې پېښې یا د یوه چا د ژوندانه ډراماتیکه کیسه.

**فېرني** (feraní) جن. و ګ. پرني.

**فېروزه** (ferozá) ښځ.م. (ج. فېروزې) یو (نیم قیمتي) کاڼی دی چې ابي یا زرغون وېره شین یا زرغون وېره ګرې رنګ لري.

**فيس** (fis) نر.م. ۱) تاټې، او غم، کبر، غرور، ځان ښکاره کول؛ ۲) د ډاکټر حق الزحمه.

**فېشن** (fešə́n) نر.م. ۱) ډول، سینګار، ښکلل؛ ۲) ډول، قسم، راز؛ ۳) دود و دستور.

**فيشن** (fíšə́n) نر.م. بیا. انشقاق، په برخو وېشل کېدنه، د غیر زوجي تکثر یو ډول دی.

**فيصد** (fisád) نر.م. په سلو کې، هر عدد یا مقدار چې د سلو په مقیاس بیانېږي

**فيصدي** (fisadí) ښځ.م. د سلو په مقیاس د یوه مقدار یا عدد ټاکنه.

**فيصله** (faysalá) ښځ.م. (ج. فیصلې) ۱) پرېکړه؛ ۲) حق و باطل سره بېلول.

**فيصله نامه** (faysalánāmá) ښځ.م. پرېکړه لیک.

**فيض** (fayz) نر.م. ۱) زیاتې اوبه؛ ۲) زیات شی؛ ۳) ډېره ورکړه، زیات بخښښ؛ ٤) مج. ګټه.

**فيف** (fif) نر.م. فې، فیوډ، فیف (و ګ. تیول).

**فيل** (fil) نر.م. و ګ. پیل.

**فيلاريا** (filāryā́) نر.م.ج. (بیا.) د څو ډولو رشته یي پارازیتي چنجیو هر یو یې چې د شمزۍ والو ژویو په وینو او نسجو کې اوسي.

**فيلالوجي** (filālojí) ښځ.م. ۱) د زده کړې او ادبیاتو سره مینه، څېړنه، پوهه؛ ٤) تاریخي ژبپوهنه؛ ۵) د یوې ژبې د صوتونو مطالعه.

**فيل خانه** (filxāná) ښځ.م. پیلخانه، د فیل د ساتنې خونه.

**فيلډ مارشال** (fildmāršā́l) نر.م. د ګرمارشال، سپهسالار؛ تر ټولو لوړه عسکري رتبه ده.

**فيلسوف** (faylasū́f) نر.م. حکیم، پوه، عاقل، حکمت خوښوونکی، څوک چې په فلسفه کې ژوره مطالعه کوي او هغه څېړي.

**فيل مرغ** (filmárğ) نر.م. و ګ. شونډکیز چرګ.

**فيلوان** (filwā́n) نر.م. څوک چې د پیل ساتنه او روزنه کوي.

**فيوډ** (fyūḍ) نر.م. ج. فې، فیف (و ګ. تیول).

**فيوډال** (fyūḍā́l) نر.م. (ج. فیوډالان) فیوډل؛ ۱) لوی خان، لوی ملاک، د سترو املاکو او رعایا وڅښتن؛ ۲) ص. نر.م. د فیوډ په څمکه مربوط.

**فيوډاليزم** (fyūḍālízam) نر.م. فیوډالي سیستم، خانخاني، ملک الطوایفي، ارباب الرعیتي.

**فيوج** (fyūj) نر.م. (سا.) له واقعیت څخه موقتي تېښته.

**فيوز** (fyoz) نر.م. (ج. فیوزونه) (بر.) د اضافي بار د جریان د مخنیوي لپاره د ډاډ یوه وسیله ده چې په لږ طول له یوه هادي فلز څخه جوړ شوې او په ټاکلې تودوخه کې ویلې کېږي.

# ق

ق(۱) (qāf) نر.م. د پښتو الفبې دوه دېرشم توری دی. ابجدي ارزښت يې (۱۰۰) دی.

ق(۲) (qāf) د قمري (هجري) يالېږدي سپوږمۍ کلندون.

قاب (qāb) نر.م. ۱) غاب، تينګرى؛ ۲) پوښ؛ ۳) چوکاټ.

قابچي (qābčí) نر.م. وربه، ورساتی، دروازه وان.

قابض (qābíz) ص.نر.م ۱) په موتي کې نيوونکی؛ ۲) ايستونکی؛ ۳) دالله يو نوم، مسلط، برلاسی.

قابل (qābíl) ص. نر.م. ۱) منونکی، قبلوونکی؛ ۲) ور، مناسب؛ ۳) ماهر، پوه، لايق.

قابلو (qābló) ښځ.م. په مخابره او برق کې هغه ناقل چې د يوې مجردې مادې په منځ کې وي.

قابله (qābılá) ښځ.م. ۱) دايي، دايه؛ ۲) زېږنمله، زېږنپاله؛ ۳) ماشوم پالونکې.

قابله ګي (qābılagí) ښځ.م. ۱) د قابلې دنده؛ ۲) دايي توب، ببی توب، د زېږنپالې کار.

قابليت (qābılyát) نر.م. ۱) قابل توب، مهارت؛ ۲) پوهه، هوښياري.

قابو (qābū́) نر.م. ۱) کابو، څارو، بېړګی، حملې ته چمتو او تيار؛ ۲) وس، طاقت، توان، قوت؛ ۳) نېږدې.

قات (qāt) صوت. نر.م. قت؛ ۱) کرت، دچرګې غږ؛ ۲) ص. نر.م. ج. کت، غبرګ، کوښت.

قاتل (qātíl) ص. نر.م. (ج. قاتلان) خوني، وژونکی، قتل کوونکی.

قاتول (qātawə́l) ص. مت. کتول، کاتول، غبرګول، کوښتول.

قاتېدل (qātedə́l) مص. ل. کتېدل، کاتېدل، کوښتېدل، غبرګېدل.

قاچاق (qačáq) نر.م.ج. ۱) تېښتوونې؛ ۲) د قانون مخالفه چاره چې په پټه ترسره شوې وي يا ترسره کېږي.

**قاچاقي** (qāčāqí) ص. نب. ۱) په قاچاقو اړوند؛ ۲) نر. م. ج. څه چې په قاچاقي ډول راوړل شوي وي يا راوړل کېږي.

**قاچاقچي** (qāčaqči) نر. ښځ. م. څوک چې گرېږي (قاچاق) کوي.

**قادر** (qādír) ص. نر. م. ج ۱) مقتدر؛ ۲) زورور؛ ۳) قابل، لايق؛ ٤) تجربه کار؛ ٥) الله تعالی.

**قاروره** (qārūra) ښځ. م. ښيښه، هغه ښيښه چې د ناروغی د معلومولو لپاره په کې متيازې اچوي.

**قاره** (qārá) ښځ. م. (جغ.) لويه وچه، براعظم، بر.

**قاري** (qārí) نر. م. (ج. قاريان) ۱) لوستونکی؛ ۲) د قرآن مجيد لوستونکی او حفظ کوونکی.

**قاز** (qāz) نر. م. بته، ايلی، هيلی.

**قاش** (qāš) نر. م. ۱) تبندر، ترازه، دره، نيږه؛ ۲) د توپنچې پوښ.

**قاشق** (qāšūq) ښځ. م. و گ. کاچوغه.

**قاشوغه** (qāšūğa) ښځ. م. و گ. کاچوغه.

**قاصد** (qāsíd) نر. م. ۱) استازی، بگاری، خبر وړونکی؛ ۲) ص. نر. م. ج. قصد کوونکی.

**قاصدي** (qāsıdí) ښځ. م. استازيتوب، ايلچيتوب، څريتوب؛ بگاريتوب، خبروړنه.

**قاصر** (qāsír) نر. م ۱) څوک چې بې پروايي کوي؛ ۲) ص. ر. م. ج. نارسا، ناتوانه؛ ۳) لنډ.

**قاضي** (qāzí) نر. م. ۱) حکم کوونکی؛ ۲) حاجت پوره کوونکی؛ ۳) منصف، د شرعي حاکم. رايه ورکړی.

**قاضيتوب** (qāzitób) نر. م. منصفي، حکميت، دشرعي دحاکم يا قاضي دنده.

**قاطر** (qātír) نر. م. و گ. غاتره.

**قاطع** (qātí?) فا. نر. م ۱) غوڅوونکی، غوڅوونی، پرې کوونکی؛ ۲) دغوڅولو آله.

**قاعد** (qāsíd) نر. م. ص. ۱) ناست، د قايم مقابل؛ ۲) لاربښود، مشر، رهبر.

**قاعدتاً** (qāsídatán) ق ۱) دقاعدې سره سم، اساساً؛ اصلاً؛ ۲) معمولاً، د معمول سره سم.

**قاعده** (qāsıdá) ښځ. م (ج. قاعدې، قواعد) د قاعد مؤنث؛ ۱) قانون، سيستم؛ ۲) بنسټ، اساس؛ ۳) هن. بېخ.

**قاغمه** (qāğmá) ښځ. م. و گ. کاغمه.

**قاغی** (qāğáy) ښځ. م. و گ. کاغی.

**قاف** (qāf) نر. م. د «ق» د توري آواز او تلفظ.

**قافله** (qāfılá) ښځ. م. کاروان؛ ۱) اېړ، جوپه، بهير؛ ۲) د مساپرو ډله.

**قافيه** (qāfıyá) ښځ. م. (ج. قافيې) ۱) د بيت د پای کليمه چې شعر باندې ختمېږي؛ ۲) شا، وروسته، څټ؛ ۳) ورپسې تلونکی.

**قافيه بندي** (qāfıyábandi) ښځ. م. قافيه برابرول، قافيه جوړول، قافيه تړل.

**قاقم** (qāqúm) نر. م. سپين لمی، د سنجاب په څېر حيوان دی، پوستکی يې نرم دی.

**قاقمه** (qāqmá) ښځ. م. و گ. کاغمه.

**قال** (qāl) نر. م. خبرې، لوړې خبرې، بې بړ، غېدل. قال و قيل: گډې وډې خبرې.

**قالب** (qāláb) نر. م. (ج. قالبونه) ۱) هغه ظرف چې ويلې شوې اوسپنه، سرپ يا سمنټ وراچوي اود هماغه ظرف په بڼه کېږي؛ ۲) جسم، تن.

**قالبي** (qālabí) ص. نب. ۱) له قالبه راوتلی، په قالب کې جوړ شوی؛ ۲) په قالب اړوند؛ ۳) په اندازه، برابر؛ ٤) مج. محدود، د لنډ اندی.

**قالی** (qāláy) ښځ. م. و گ. غالی.

**قالين** (qālín) ښځ. م. و گ. غالی.

**قام** (qām) نر. م. و گ. قوم.

**قامت** (qāmát) نر.م. ۱) ونه، قد، تنه، دړه؛ ۲) د چارې سمبڼه.

**قاموس** (qāmús) نر.م. ۱) بحر، سمندر، د بحر منځ؛ ۲) وګ. ډیکشنري؛ ۳) رازداره.

**قانع** (qāní) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ۱) بسندی، خوښ، قناعت کوونکی؛ ۲) راضي.

**قانون** (qānún) نر.م. ۱) د يوه شي مقياس او اصل؛ ۲) هغه مقررات او احکام چې دولت يې د انتظام او د ساتنې او د ټولنيزو چارو د ادارې لپاره وضع کوي.

**قانونپوه** (qānūnpóh) نر.م. قانون دان، څوک چې د قانون په څانګه کې روزل شوی وي.

**قانوناً** (qānūnán) ق. په قانون سره، د قانون پر بنسټ، له قانون سره سم.

**قانوندان** (qānúndān) نر.م. ۱) وګ. قانونپوه؛ ۲) قانون وضع کوونکی، قانون جوړوونکی.

**قانونساز** (qānūnsáz) فا. نر.م. قانون جوړوونکی؛ قانون سازه اسيمبلي، مقننه.

**قانون نامه** (qānūnnāmá) ښځ.م. قانون ليک.

**قانوني** (qānūní) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) پر قانون برابر، د قانون سره سم؛ ۲) ښځ.م.ج. اصولي.

**قانونيت** (qānūnyát) نر.م. اصوليت، له قانون سره سمون، له قانون سره سموالی.

**قاهر** (qāhír) ص. نر.م.ج. ۱) بر، برلاسی، غالب؛ ۲) خوشکتي، توغمناک، قهرجن.

**قاه قاه** (qáhqáh) ښځ.م. کټ کټ، کټهار، قهقهه، په لوړ اواز خندا.

**قايد** (qāyíd) نر.م. ص. قاعد، لارښود، سرغنی، سرغنه، سرخېل؛ رهبر، پېشوا.

**قايل** (qāyíl) نر.م. ۱) ويونکی، خبرې کوونکی؛ ۲) شعر ويونکی؛ ۳) اقرار کوونکی.

**قايلول** (qāyílawál) مص. مت. ۱) ورباندې منل، اقرارول؛ ۲) معتقدول.

**قايلېدل** (qāyıledál) مص. ل. ۱) اقرارکول؛ ۲) معتقد کېدل.

**قايم** (qāyím) ص. نر.م.ج. ۱) ولاړ؛ ۲) ثابت؛ ۳) ټينګ، محکم، کلک.

**قايم مقام** (qāyımmaqám) ص. نر.م.ج. قائم مقام؛ ځای ناستی، نايب، ځای نيوونکی.

**قايمه زاويه** (qāyímazāwıyá) ښځ.م. (هـ.) هغه زاويه چې د دوو عمودي کرښو له تقاطع څخه منځ ته راځي.

**قبا** (qūbá) ښځ.م. (ج. قباوي) قباء؛ اوږده چوغه، اوږده چوغه، غدکه، يو ډول نرينه لباس دی.

**قباحت** (qabāhát) نر.م. خرابتيا، بدوالی، بدي (په قول يا فعل يا صورت کې).

**قباله** (qabālá) ښځ.م. قواله، هغه وثيقه او سند چې د غير منقول مال په پلورلو کې يې پلورونکی پېرودونکي ته ورکوي.

**قبايل** (qabāyíl) نر.ج. قبائل، د قبيله جمع.

**قبايلي** (qabāyılí) ص. نب. قبائيلي، د قبايلو، د قبايلو، په قبايلو اړوند.

**قبح** (qūbhá) ښځ.م. ۱) بدرنګي، د حسن مقابل؛ ۲) بدي؛ ۳) رسوايي، اشواينه.

**قبر** (qábər) نر.م. مړستون، ډوری، کيڅ.

**قبرستان** (qabrıstán) نر.م. هديره، د قبرونو ځای.

**قبرکن** (qabərkán) فا. نر.م. کيڅکنونی، قبر کېندونکی، څوک چې مړي ته قبر باسي.

**قبض** (qábəz) نر.م. ۱) نيونه؛ ۲) خوابدي، خواشينتيا، خفګان؛ ۳) تصرف، ترلاسه کول؛ ۴) قبضيت

**قبضول** (qabzawə́l) مص. مت. ۱) نیول؛ ۲) رانیول، ترګوتوکول؛ ۳) قبضیت پیدا کول، قبض وراچول؛ ٤) له ژوي څخه روح اخیستل.

**قبضه** (qabzá) ښځ.م. ۱) یو موټی شی، یو موټ؛ ۲) په موټي کې نیولی؛ ۳) ترلاسه شوی؛ ٤) قدرت، اقتدار؛ ٥) د توري لاستی.

**قبضېدل** (qabzedə́l) مص. ل. ۱) نیول کېدل؛ ۲) ترلاسه کېدل، په واک کې کېدل؛ ۳) قبض کېدل، په کولمو کې د غایطه موادو کلکېدل.

**قبل** (qábəl) نر.م. ۱) مخ، مخامخ، د یو شي مخ، د بعد نقیض؛ ۲) ق. د مخه، د وړاندې.

**قبلاً** (qáblan) ق. مخکې، پخوا، وړاندې.

**قبل التاریخ** (qáblutārix) نر.م. تر تاریخي دورې د مخه، له تاریخ نه پخوا، له ۵۰۰۰ څخه نیولې تر ۷۰۰۰ ق م. د مخه.

**قبل المیلاد** (qáblulmilā́d) نر.م. تر میلاد د مخه، د حضرت عیسی علیه السلام تر زېږېدو دمخه زمانه.

**قبلول** (qáblawə́l) مص. مت. قبولول، منظورول، منل.

**قبلونکی** (qáblawū́nkay) فا. نر.م. منونکی، خوښوونکی، رضامند.

**قبله** (qıblá) ښځ.م. ۱) خوا، لور؛ ۲) هغه خوا چې مسلمانان د لمانځه په وخت کې د هغې په لور مخ کوي؛ ۳) کعبه؛ ٤) معبد؛ ٥) چلند، طریقه.

**قبله نما** (qıblanomā́) ښځ.م. و ګ. لورښود.

**قبلي** (qablí) ق. نر. ښځ. م. ج. مخنی، مخکنی، پخوانی، د وروستي ضد.

**قبلېدل** (qabledə́l) مص. ل. منل کېدل، قبولېدل، منظورېدل، منظورکېدل.

**قبلیز** (qıblíz) ص. نر.م. قبله ییز، قبلې ته اړوند.

**قبول** (qabū́l) نر.م. ۱) مننه، قبلونه؛ ۲) هوکړه، رضامندي، منظوري؛ ۳) منل شوی، مقبول.

**قبولول** (qabūlawə́l) مص. مت. و ګ. قبلول.

**قبولي** (qabūlí) ښځ.م. ۱) قبلونه؛ ۲) قبوله شوې حواله؛ ۳) منظوري؛ ٤) تعهد، ژمنه.

**قبولېدل** (qabūledə́l) مص. ل. و ګ. قبلېدل.

**قبه** (qubá) ښځ.م. ۱) کبه، ګومبته، ګنبزه، ګنبده؛ ۲) هغه ځای چې ګومبته یا ګومبزه ولري.

**قبیح** (qabíh) ص. نر. ښځ. م. ج. ۱) بد، ناوړه؛ ۲) تس. د امر مخالف.

**قبیلوي** (qabilawí) مص. نب. د قبیلې، په قبیلې اړوند، قبیلې سره تړلی.

**قبیله** (qabilá) ښځ. م (ج. قبیلې، قبایل) و ګ. قوم.

**قپان** (qapā́n) نر.م. قبان، یوه پله لرونکې لویه تله چې د بلې پلې پر ځای یې له شاهین څخه د وزن تیره راځړېږي.

**قپانچي** (qapānčí) نر.م. کپانچي، دړوالا، تله والا، ترازو والا، ترازوچي.

**قت** (qat) ص. نر.م. ج. نر. م. و ګ. قات.

**قتال** (qıtā́l) نر.م. ۱) وژلون، وژنه؛ ۲) جګړه.

**قتغ** (qatáğ) نر.م. کتغ، نګولی، لنده بل.

**قتکانی** (gatkā́ṇay) نر.م. قرت کانی، سخته شګه چې خاوره ورسره وي.

**قتکوری** (qatkū́ray) نر.م. د مزرو جالیداره بوری یا تیلس چې بزګران په کې پاله رمبې یږدي.

**قتل** (qátəl) نر.م. وژنه، وژله، خون، مرګ.

**قتلګاه** (qatəlgā́) ښځ.م. د وژلو یا قتلولو ځای.

**قتلمه** (qatlamá) مص. مت. د پراټې په څېر څو کته غوړه ډوډۍ.

**قتلېدل** (qatledə́l) مص. مت. وژل کېدل، مړه کېدل.

**قتول** (qatawə́l) مص. مت. کتول، کاتول، قاتول.

**قته** (qıtá) ښځ.م. (ج. قتې) ۱) پته، پره، ورقه؛ ۲) د همدغو قطعو لوبه.

**قتی** (qotáy) نر.م. د مالوچو یا د ځرمنې پنډوس.

**قتیل** (qatíl) ص.نر.م. وژل شوی، وژلی، مقتول.

**قجري** (qajarí) نر.م. ځل، یو ډول لمخی چې د آس د پاسه او د زین د لاندې اچول کېږي.

**قجیر** (qajír) نر.م. کجیر، ۱) یو ډول لوی مرغه دی؛ ۲) نر.م. (مج.) سپین او صادق سړی.

**قچر** (qačár) نر.م. کچر، خچر، غاتره.

**قچروالا** (qačárwālā́) ص. نر.م. کچروالا، د کچرخاوند، د غاترې څښتن.

**قچی** (qıčay) نر.م. ټولی، ډله، جمعیت.

**قچي قچي** (qıčiqıči) نر.ج. ډله ډله، ټولی ټولی، گروپ گروپ.

**قحط** (qaht) نر.م ۱) وچ کالي، سوکړه؛ ۲) دخوړو کمښت، د ارزاقو لږوالی.

**قد** (qad) نر.م. ۱) ونه؛ ۲) اندازه؛ ۳) اوږدوالی؛ ٤) لوړوالی، جگوالی.

**قدامت** (qudāmát) نر.م. ۱) مخکې توب، ړومبی توب؛ ۱) لرغونتیا؛ ۲) د کار سابقه.

**قدح** (qadáh) ښځ.م. ۱) د څښلو لوښی؛ ۲) جام، ساغر؛ ۳) عیب وینه، بدوینه، بدگویي؛ ٤) رټنه؛ ۵) د نسب پېغور ورکول.

**قدر**[1] (qadr) نر.م. ۱) د یوه شي اندازه؛ ۲) برابر؛ ۳) سیک، قوه، وس، توان؛ ٤) حرمت، وقار؛ ۵) شتمنوالی.

**قدر**[2] (qadár) نر.م ۱) د یوه شي اندازه؛ ۲) سیک، قدرت؛ ۳) الهي فرمان؛ ٤) برخلیک؛ څه چې الله خپلو بندگانو ته مقدر کړي دي؛ ۵) د یوه شي ترتیب او نهایي سرحد.

**قدرت** (qudrát) نر.م. ۱) وس، توان، واک؛ ۲) فز. د کار خارج قسمت پر زمان.

**قدرتاً** (qudrátán) ق. قدرتي؛ ۱) په قدرت سره، د خدای په قدرت؛ ۲) نابېره؛ ۳) د توان له مخې.

**قدرتي** (qudratí) ص.نب. نر.ښځ.م.ج. ۱) په قدرت اړوند؛ ۲) اصلي، ذاتي، طبیعي، له آره؛ ۳) و.گ. قدرتاً.

**قدردان** (qadardā́n) ص.نر.م.ج. قدرمن، قدر پېژندونکی، احترام کوونکی.

**قدرمن** (qadarmán) نر.م. ۱) ښاغلی، عزتمن، د قدر وړ؛ ۲) څوک چې د نورو ډېر قدر کوي.

**قدرول** (qadrawə́l) مص. مت. ۱) عزت ورکول، درنول؛ ۲) اندازه کول؛ ۳) ارزښت ورکول.

**قدس** (qūds) نر.م. سپېڅلتیا، پاکوالی؛ جنت.

**قدسي** (qudsí) ص.نب.نر.ښځ.م.ج. ۱) قدس ته منسوب؛ ۲) د جنت، د فردوس؛ ۳) روحاني؛ ٤) ملایکه؛ ۵) قدسي حدیث: هغه حدیث چې د خدای کلام په کې نقل شي.

**قدغن** (qadağán) نر.م. و.گ. کتغن.

**قدم**[1] (qadám) نر.م. ۱) پل، منډ، د پښې پل؛ ۲) گام؛ ۳) تقدم، په یوه کار کې سابقه.

**قدم**[2] (qıdám) نر.م. دحدوث ضد؛ ۱) پخوانی والی لرغونتوب؛ ۲) وړاندې والی، مخکښتوب.

**قدما** (qudamā́) نر.ج. اولني، ځنډني، پخواني، ړومبني، وړاندیني.

**قدمځای** (qadamǰā́y) نر.م. ۱) بیت الخلا؛ ۲) پل، منډ.

**قدم لرونکی خپوری** (qadamlarū́nkayxpóray) نر.م. (عس.) هغه سرتېری چې په ډلگۍ کې له نورو ملگرو څخه په جگړه ییزه او سیاسي ښوونه او روزنه کې وړاندې وي.

**قدمه** (qadamá) ښځ.م. ۱) مرحله، مرتبه، درجه؛ ۲) پوړی، ړکی؛ ۳) لوړه ژوره؛ ٤) کتار، لیکه؛ ۵) گروپ، ټولگی، ډله.

**قدنما** (qadnumá) ص. نب. نـر. ښـځ.م.ج. تنه څرگندوونکی، د ټول لوړوالي ښکاره کوونکی. - قدنما هینداره، قدنما عکس.

**قدوس** (qudūs) ص. نـر.م.ج. ۱) لـه هـر عیبه او نقصه سپېڅلی؛ ۲) مبارک؛ ۳) نر.م. دالله (ج) یو نوم.

**قدوقامت** (qaduqāmát) نر.م. ونه، دړه.

**قدیفه** (qadifá) ښځ.م. دوپټه، څادر، جیباټه.

**قدیم** (qadím) ص.نر.م.ج. ۱) پخوانی، لرغونی، وړاندینی؛ ۲) دالله تعالی نوم دی.

**قدیمي** (qadimí) ص. نب. نر. ښځ.م.ج. قدیم ته منسوب، د قدیم، لرغونی.

**قذف** (qazf) نـر.م. ۱) څـوک پـه ډېرو ویشتـنه؛ ۲) اص. چاته دزنا نسبت کونگ؛ ۳) ښکنځا؛ ٤) اچونه؛ ۵) د دریاب غاړه، د سیند غاړه.

**قر** (qur) نر.م. په‌نس کې د باد پیدا کېدو اواز.

**قرانخور** (qurānxór) ص.نر.م. (ج. قرآن خواره) ۱) څوک چې په قرآن قسم کـوي؛ ۲) څوک چې په قرآن شریف باندې ناحقه سـوگـند کوي.

**قرابت** (qarābát) نر.م. ۱) خپلوي؛ ۲) نږدېکت، نږدېوالی.

**قرار** (qarár) ص. نر.م.ج. ۱) کـرار، هوسا، آرام؛ ۲) استوگن کـېدل؛ ۳) مطمین؛ ٤) پرېکـړه، فیصله؛ ۵) ژمنه؛ ٦) ق. له مخې.

**قرارداد** (qarārdád) نر.م. تړ، تړون.

**قراردادي** (qarārdādí) ص.نر.م. تړون کوونکی.

**قرارگاه** (qarārgá) ښځ.م ۱) استوگنځی، مسکن؛ ۲) عس. د قرار و صدور ځای.

**قراروالی** (qararwālay) نر.م. کراروالی؛ ۱) آرامي هوسایي؛ ۲) ثابت پاته والی.

**قرارول** (qarārawál) مص.مت. کرارول؛ ۱) آرامول، هوساکول؛ ۲) چوپول، خاموشول.

**قراري** (qarārí) ښځ.م ۱) هوسایي؛ ۲) چوپتیا؛ ۳) خیرخیریت.

**قرارېدل** (qarāredál) مص.ل. کرارېدل؛ ۱) آرامېدل هوساکېدل؛ ۲) چوپېدل، چوپ کېدل.

**قراقلي** (qarāqulí) ښځ.م. وَگ. کرکولی.

**قران** (qirán) نر.م. ۱) سره یوځای کېدنه؛ ۲) حج و عمره په‌ځای کول؛ ۳) پنځوس پولی، قیران.

**قراول** (qarāwál) نـر.م. ۱) د ځانـې لپاره پـه بـرج کې سوری یا دیدوان؛ ۲) محـافـظ، ساتندویه؛ ٤) هغه پوځ چې په مخکې ځي.

**قرائت** (qirāát) نر.م. ۱) لوستنه، لـوست؛ ۲) په شرع کې د قرآن لوستلو ته وایي.

**قـرب** (qurb) نـر.م. ۱) نـږدېوالی؛ ۲) خپښي، خپلوي؛ ۳) مرتبه، منزلت.

**قربان** (qurbán) نر.م. ځار، فدا.

**قـربانول** (qurbānawál) مص.مت. ۱) درووړول، د خدای په لاره کې صدقه ورکـول؛ ۲) جـارول، حلالول.

**قرباني** (qurbāní) ښځ.م. ۱) سـرښندنه؛ ۲) اختري، اضیحه، جاري، هغه څاروی چې قربانېږي.

**قربانېدل** (qurbānedál) مص.ل. ۱) درووړېدل، د خـدای په لاره کې صدقه کـېدل؛ ۲) جـارېدل، ځارېدل، واري کېدل.

**قربت** (qurbát) نـر.م. ۱) نږدېکت، نږدېوالی؛ ۲) د عبادت په وسیله خـدای ته نږدې والی؛ ۳) خپلوي، خپلولي.

**قرپوق** (qirpúq) نر.م. یو دول سپورتي لوبه ده.

**قرت کانی** (quratkáṇay) نر.م. د تیږو له غونډاړو او خاورو څخه جوړه شوې کلکه طبقه.

**قرحه** (qarhá) ښځ.م. ۱) پرهار، ټپ، زخم، جراحت؛ ۲) تناکه.

**قرص** (qurs) نر.م. ۱) ټیکله، ټیکلی؛ ګردی ډوډی ۲) د لمر ټکی؛ ۳) ټابلېټ، ګولی؛ ٤) کولچه.

**قرض** (qarz) نر.م. پور، موس، قرضه.

**قرضدار** (qarzdár) ص.نر.م. ج. پوروړی.

**قرطاس** (qırtás) نر.م. کاغذ، لیکپاڼه.

**قرطاسیه** (qırtāsyá) ښځ.م. (ج. قرطاسیې) د لیکلو شیان، په تېره بیا کاغذ، قلم او پاکټ.

**قرعه** (qursá) ښځ.م. ۱) پچه، هسک، غوری؛ ۲) پالی، درمل دانې؛ ۳) برخه، ونډه، سهم.

**قرعه کشي** (qursakaší) ښځ.م. خسنی ویستنه، پچه اچونه.

**قرغ** (qurūğ) نر.م. ۱) یو ځای ځارل او نور خلک د هغه له استفادې څخه منع کول؛ ۲) خنډ کېدل؛ ۳) ناغمه، بندښت.

**قرقره** (qarqára) ښځ.م. ۱) دانده، د مستۍ په وخت لکۍ دانګول او تګ کول؛ ۲) څوندی، شمله، ۳) کرکره، یو ډول زانې (زانه) ده.

**قرقری** (qarqaráy) نر.م. د آس دخرخرۍ کولو آله.

**قرقلي** (qarqulí) ښځ.م. وګ. کرکولي.

**قرقیچن** (qarqečán) نر.م. وګ. قرقیچن.

**قرمز** (qırmíz) نر.م. ۱) سور رنګ؛ ۲) اصلاً د یوې وړې بیضوي ډوله حشرې نوم دی.

**قرمساق** (qaramsấq) نر.م. چرس، بروه، بروا، د خپلې ښځې دلال.

**قرن** (qárən) نر.م. (ج. قرنونه، قرون) پېړۍ، سدۍ، سل کلنۍ؛ سل کلنه دوره.

**قرنا** (qarnấ) ښځ.م. وګ. کرنا.

**قرنطین** (qarantín) نر.م. قرانطین؛ هر تجرید یا محدودیت چې د ساري ناروغیو په مقابل کې پر مسافرو یا سفر باندې لګول کېږي.

**قرنیکه** (q(u,a)rnikə́) نر.م. وګ. ترنیکه.

**قرنیه** (qarnıyá) ښځ.م. د سترګې د جوړښت یوه طبقه ده چې د صلیبیې په مخنۍ برخه کې پرته ده.

**قروانه** (qar wānấ) ښځ.م. وګ. کاروانه.

**قروغ** (qurūğ) نر.م. وګ. قرغ.

**قرهاری** (qurahấray) نر.م. صوت. کرهاری، د ګیړکو او څینې نورو شیانو اواز.

**قره قل** (qaraqūl) نر.م. وګ. کرکول.

**قریب** (qaríb) ص. نر.م. ج. ۱) نږدې، څېرمه؛ ۲) خپل (خپلوان)؛ ۳) عر. د شعر یو بحر دی.

**قریباً** (qaríbán) ق. نږدې، په تقریبي توګه.

**قریبي** (qaribí) ښځ.م. ۱) نژد یوالی، نږدیوالی؛ ۲) خپلوي، خپلولي.

**قریحه** (qarihá) ښځ.م. ۱) طبع، ذوق؛ ۲) په کتابت او د شعر په ویلو کې طبیعي قدرت..

**قرین** (qarín) ص. نر.م. ج. ۱) نژدې، نږدې؛ ۲) نر.م. ملګری، دوست؛ ۳) شبیه؛ ٤) مېړه.

**قرینه** (qariná) ښځ.م. (ج. قرینې، قرائن) د قرین مؤنث؛ ۱) نښه، پلامه؛ ۲) شبیه؛ ۳) ماندینه.

**قریه** (qarıyá) ښځ.م. کلی، بانډه، قصبه.

**قریه دار** (qaryadấr) ص.نر.م. دکلي مشر، ملک، کندي دار.

**قرتې** (qráte) ښځ.م. ۱) بې ځایه او بې مانا خبرې؛ ۲) مج. خوړ مجلس او خوږې خبرې.

**قرقیچن** (qarqečə́n) ص.نر.م. قرغیچن، له یخنۍ نه غونج مونج، سړو نه تونډ موند.

**قرمېزن** (qarmezə́n) ص.نر.م. ۱) لاړن، لاړو، هغه څوک چې له خولې یې لاړې او ځګونه

بهیږي؛ ۲) ګرنګن، هغه څوک چې پزه یې له ګرنګو ډکه وي؛ ۳) کرېځن ډنګر پسه چې ګرنګ یې بهیږي.

قرمېزي (qarmezé) ښځ. م. لاړې، څګونه، ګرنګ، د پزې خلط یا ګاته مایع.

قرینګا (qringā́) ص. نب. ښنګا، کانۍ، بینګۍ، غونۍ.

قسامت (qasamát) نر. م. قسامه؛ ۱) په لغت کې د قسم پرځای وضعه شوې اسم دی؛ ۲) د جګړې اوربند، وولـه.

قساوت (qasāwát) نر. م. سخت زړیتوب، سخت زړتیا، بېرحمي، ظلم.

قست (qast) نر. م. کست؛ ۱) نیت، اراده، قصد؛ ۲) رخه، کینه، بغض.

قسط (qıst) نر. م. ۱) نیاو، عدل؛ ۲) ونډه، برخه؛ ۳) مقدار؛ ٤) پور؛ ٥) هغه پور چې پرڅو برخو وویشل شي او هره برخه یې په یوه ټاکلې موده کې ورکول کېږي.

قسط وار (qıstwā́r) ق. په قسط، د قسط په ډول.

قسم[۱] (qísəm) نر. م. ډول، راز، نوع، څېر، توګه.

قسم[۲] (qasám) نر. م. لوړه، لو، سوګند، حلف.

قسم[۳] (qasm) نر. م. د ښځو په منځ کې وار ایښوونه.

قسمت (qısmát) نر. م. ۱) نصیب؛ ۲) وېشنه؛ ۳) برخه، ونډه، حصه؛ ٤) تقدیر، برخلیک.

قسیم (qasím) فا. نر. م. ۱) وېشونکی، برخه برخه کوونکی؛ ۲) ص. نر. م. ج. ښکلی، ښایسته.

قشر (qíšər) نر. م. ۱) پوټښ؛ ۲) پوستکی، پوټکی.

قشري (qıšrí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ۱) د قشر، په قشر اړوند؛ ۲) سطحي.

قشلاق (qıšlā́q) نر. م. ۱) د ییلاق ضد، زنګوره، ګرمسېر؛ ۲) کلی، بانډه.

قشله (qıšlá) ښځ. م. و ګ. عسکر کوټ.

قصاب (qasā́b) نر. م. کناری؛ ۱) غوښه پلوروونکی ۲) مج. ظالم، وژنو، وژونکی، قاتل.

قصابي (qasābí) ښځ. م. کسابي، کناري، حلالونه؛ ۱) د غوښو خرڅولو هټۍ؛ ۲) مج. قتل وقتال.

قصاص (qısā́s) نر. م. ۱) جزا، د مړي پور، د قتل بدل؛ ۲) د پرهار په بدل کې پرهار؛ ۳) د قاتل یا ضارب مجازات.

قصبة الريه (qasbaturıyá) ښځ. م. وچه غاړه، هوايي نل، د سږو هوايي نل، تر ستوني وروسته لنډ غضروفي نل دی.

قصبه (qasabá) ښځ. م. (ج. قصبې) ۱) له څو کلیو څخه جوړه شوې ساحه؛ ۲) ښارګوټی؛ ۳) نل.

قصد (qásd) نر. م. ۱) نیت، اراده؛ ۲) میانه روي؛ ۳) مقصود؛ ٤) مج. مخالفت.

قصداً (qásdán) ق. ۱) د قصد او ارادې لـه مخې، په نیت سره؛ ۲) د مخالفت له مخې.

قصدي (qasdí) ص. نب. نـر. ښځ. م. ۱) ارادي، د قصد، قصد ته منسوب؛ ۲) عنادي.

قصر (qásər) نر. م. ۱) ماڼۍ؛ ۲) لنډونه؛ ۳) حبس؛ ٤) منع.

قصور (qusū́r) نـر. م. ۱) خطا، ګناه؛ ۲) ستړیا؛ ۳) په کومه چاره کې ترشا کېدل.

قصه (qısá) ښځ. م (ج. قصې) و ګ. کیسه؛

قصیده (qasidá) ښځ. م. (ج. قصیدې) بولله، یو ډول نظم دی چې د غـزل په څېـر یوه مطلع لـري او ورپسې نور بیتونه چې شمېر یې تـر (۳۳) پورته وي، په وزن او قافیه کې سره یو شی وي.

قضا (qazā́) ښځ. م. ۱) حکم؛ ۲) ادا کول؛ ۳) روا کـول؛ ٤) برخلیک؛ ٥) امـر، حکم؛ ٦) اراده؛ ۷) خبر؛ ۸) فق. ناغه.

**قضاوت** (qazāwát) نر.م. حکم: د دوو يا څو تنو ترمنځ پرېکړه کول يا د ښو او بدو حکم کول.

**قضائيه** (qazāiyá) ص. نب. ښځ.م. ۱) قضايي، په قضا اړوند: ۲) ښځ.م. قضايي اورګان.

قضائيه قوه: هغه عدلي اورګان چې ټولې محکمې او ستره محکمه په کې شاملې دي.

**قضيه** (qazyá) ښځ.م. ۱) خبر: ۲) رو. حکم: ۳) فرمان: ٤) پېښه، حادثه: ٥) من. د تصديق لفظي تعبير: ؛ ۷) ماجرا.

**قط** (qat) ص. نر.م.ج. ۱) و.ګ. کست(۲: ۲) د قلم نوکه يا څوکه چې له کاغذ سره تماس کوي.

**قطار** (qatár) نر.م. و.ګ. کتار د ټولو صيغو سره.

**قطاع**(۱) (qıtā́ʕ) نر.ج. د قطع او قطيع جمع.

**قطاع**(۲) (qa tā́ʕ) فا. نر.م. سخت پرې کوونکی.

**قطاع**(۳) (qu tā́ʕ) فا. نر.ج. د قاطع جمع، پرې کوونکی: قطاع الطريق: لاره وهونکی.

**قطب** (qūtab) نر.م (ج. قطبونه) ۱) مولی، ماولی سرغاب، لسانځه: ۲) د يوه شي ملاک او مدار: ۳) فز: يوه الکتريکي مدار مثبت او منفي پای: ٦) جيع: د ځمکې د کرې د محور طرفين.

**قطب پله** (qūtabpalá) شمال، د قطب پلو، شمال لوري.

**قطب نما** (qutəbnumā́) ښځ.م.و.ګ. لوربنود.

**قطبي** (qutbí) ص. نب. نر. ښځ.م. د قطب، قطب ته منسوب، په قطب مربوط.

**قطبين** (qutbáyn) نر.ج. ۱) دوه قطبه: ۲) شمالي او جنوبي قطبونه.

**قطر** (qútar) نر.م. ۱) اقليم، سيمه: ۲) خوا، اړخ: ۳) پنډوالی، پېړوالی.

**قطران** (qatrán) حن. ۱) و.ګ. زرنه(۲): ۲) فير

**قطره** (qatrá) ښځ.م. ۱) څاڅکی، څڅی، تراوی، د باران يوه دانه: ۲) مج. ډېره لږه اندازه.

**قطع** (qátʂa) ص. نب. نر. ښځ.م.. ۱) غوڅ، پرې، جلا: ۲) نر.م.ج. غوڅونه: ۳) جزم، يقين.

**قطعاً** (qātʂám) ق. ۱) په قطعي توګه، ښخې: ګرسره، هډو، چور: ۲) يقيناً، مطمئناً.

**قطعنامه** (qa taʂnāmá) ښځ.م. پرېکړه ليک، فيصله ليک، ريزلوشن، ميني فيستو.

**قطعه** (qıtʂá) ښځ.م. ۱) ټوکړه، ټوک: ۲) پټه: ۳) قطعه خط: هغه طول چې له دواړو سره محدود وي: ٤) اد. دوه يا څو بيتونه دي چې د لومړي بيت د دوو مصرعو قافيه سره يو شی نه وي.

**قطعه بازي** (qıtʂabāzí) ښځ.م. پټې، تاش، د پټو لوبه، د پرو لوبه، د قطعو لوبه.

**قطعي** (qataʂí) ص. نب. نر. ښځ.م. ۱) مطلق، قاطع: ۲) نر.م.ج. غوڅ، زوک.

**قطعيت** (qatʂıyát) نر.م. ۱) قطعي توب: ۲) يقيني والی، حتمي توب: ۳) قطع والی.

**قطمير** (qıtmír) نر.م. ۱) د کجوري د منډکې او غوښې ترمنځ نرۍ پرده: ۲) د کهف د اصحابو د سپي نوم.

**قطی** (qutáy) ښځ.م. و.ګ. کوتی.

**قفا** (qafā́) ښځ.م. ۱) څټ، ورمېږ: څټميری: ۲) ق. تر شا، پسيشا.

**قفس** (qafás) نر.م. کپس، پنجره، محفظه.

**قفل** (qūfal) نر.م. جندره، کلپ، قلف، چورک.

**قققنات** (qaqar nát) نر.م. ککړنات، د چرګو او چرګنو يو ... ل چې زياتره يې رنګ تور وي.

**ققنس** (qaqnás) نر. ققنوس، اور مرغه، موسيقار، يو افسانوي مرغه دی.

**قلابند** (qalābánd) نر.م.ج. و.ګ. کلابند.

**قلابي** (qulābi) نر. م قلبي، غير اصلي، جعلي.
**قلات** (qalā́t) نر.م. وگ. کلات.
**قلار** (qalā́r) ص. نر.م.ج. وگ. کرار.
**قلب** (qā́lb) نر.م. (ج. قلبونه) ۱) وگ. زړه ۱)؛ ۲) عقل؛ ۳) دیوه شي منځ؛ ٤) نسکور؛ ٥) ناچله؛ ۷) درغل، ټګ.
**قلباً** (qā́lbán) ق. له زړه، د زړه له کومي.
**قلب والی** (qā́lbwā́lay) نر.م. ۱) کوټه والی، ناچلتوب؛ ۲) دروهنه، درغلتوب، ټګی.
**قلبه** (qulbá) ښځ.م. کلبه؛ ۱) د غوایانو جوړه؛ ۲) ییوي، ییوه.
**قلبي** (qalbí) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. ۱) دزړه، په قلب اړوند؛ ۲) ق. د زړه له کومي؛ ۳) ښځ.م. دروهنه، درغلي، ټګي؛ ٤) تقلبي (پیسه).
**قلت** (qıllát) نر.م. کمښت، کموالی، لږوالی، د کثرت مقابل.
**قلتبان** (qultabā́n) ص. نر.م.ج. چړوس، بړوا، دووس، بې غیرت.
**قلعه** (qalʿá) ښځ.م. وگ. کلا.
**قلعه بېګي** (qalʿabegí) نر.م. قلابېګي؛ ۱) دکلا ساتنه؛ ۲) کوټ مشر، کوتوال.
**قلعي** (qalaʿí) نر.م.جن. قلع، رصاص، ارزیز، ترسرپو کلک او د تورق وړ یو فلز دی.
**قلعي گر** (qalaʿígár) ص. نر.م.ج. ټتار، مسګر.
**قلف** (qulf) نر.م.وگ. کولپ.
**قلفک** (qulfák) نر.م. کلپکی، چوړکی، کلپک.
**قلم** (qalám) نر.م (ج. قلمونه) ۱) لیکانی، د لیکلو آله؛ ۲) ادبي شیوه؛ ۳) توک، جزء؛ ٤) د بوټي قلمه؛ ٥) غوځونه؛ ٦) مج. قضا، قدر.
**قلمداد** (qalamdā́d) نر.م. ۱) یو شي یا څوک په ګوته کول؛ ۲) په قلم لیکل.
**قلمدان** (qalamdā́n) نر.م. قلمدانی.
**قلمرو** (qalamráw) نر.م. ۱) د واک سیمه، د اتوریتي حوزه؛ ۲) ساحه، چاپېر؛ ٤) سیمه.
**قلموال** (qalamwā́l) نر.م. ۱) لیکونکی، لیکوال، کاتب؛ ۲) قلم چلوونکی؛ ٤) نقاش.
**قلمه** (qalamá) ښځ.م.ج. د ونو یا ګلانو ښاخونه چې په ځمکه کې د ربښه کولو لپاره ښخېږي.
**قلمي** (qalamí) ص. نب. ۱) د قلم، په قلم اړوند؛ ۲) پیوندي؛ ۳) په قلم کښل شوی؛ ٤) نر. ښځ. م.ج. قلمي نسخه؛ ٥) مج. ښکلې، ښایسته؛
**قلنج** (qulánj) نر.م. وگ. قولنج.
**قلندر** (qalandár) نر.م. ملنګ، ګرځنده درویش، مجرد، بې قیده.
**قلنګ** (qaláng) نر.م. ۱) مالیه، باج، کلنګ، د ملنګ نذرانه؛ ۲) وگ. کلنګ[1].
**قلیل** (qalíl) ص.نب. کم، لږ، نوکی، دکثیر مقابل.
**ق. م.** (qāfmím) د قبل المیلاد لنډون دی، ترمیلاد د مخه مخفف.
**قمار** (qımā́r) نر.م. جواري.
**قمارباز** (qımārbā́z) نر.م.ج. جوارګر، څوک چې قمار وهي.
**قمارخونه** (qımārxūná) ښځ.م. هغه ځای چې قمار (جواري) په کې کېږي.
**قماش** (qumā́š) نر.م. ۱) د کورکالي او سامان، نخي نوکر؛ ۲) جامه، ل[illegible]س.
**قمچینه** (qamčína) ښځ.م. وگ. شلاخه.
**قمر** (qamár) نر.م. وگ. سپوږمۍ.
**قمري[1]** (qumrí) ښځ.م. سپلمه، غمبري، کوکو کوتره، سره فاخته، کتمیره.
**قمري[2]** (qamarí) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. قمر ته منسوب، د قمر، په قمر اړوند، د سپوږمۍ؛

قمري كليز يا سپوږميز كليز: پر ځمكه باندې شا وخوا د سپوږمۍ راګرځېدل.

**قنات** (qanát) نـر.م. ۱) مجرا، نـل؛ ۲) د اوبـو د جـريان لپاره د ځمكې لاندې مجـرا جـوړول؛ ۳) و ګ. كارېز.

**قناد** (qanā́d) ص. نـر.م. (ج. قـنادان)؛ ۱) قند جوړوونكى؛ ۲) دخوږو جوړوونكى او پلورونكى.

**قنادي** (qanādí) ښځ.م. قناتى؛ ۱) دخوږو جـوړولو او پلورلو دكان؛ ۲) ص. نب. په قناد اړوند.

**قناعت** (qınāʕát) نر.م. ۱) سكتـه، بسنـه، صبر؛ راضي والى؛ ۲) تص. د نفس خوښى.

**قناوېز** (qanāwéz) نر.م. كناويز؛ ۱) شـمندروز، يو ډول وريښمين توكر؛ ۳) كوتر غاړى.

**قنبيله** (qanbila) ښځ.م. و ګ. كامبېله.

**قنج** (qanj) نـر.م. ۱) قينـج، ناز او ادا، كـرشـمـه؛ ۲) مكر، دروهنه، غولونه، تېر ايستنه.

**قنجوغه** (qanjūǧá) ښځ.م. و ګ. كنجوغه.

**قنجي** (qunjí) ښځ.م. و ګ. كونجي، كيلي.

**قند** (qand) نـر.م. جن. سـپـينـه خـوږه مـاده ده چې د سكـروز د بلـورو لـه يوځـاى كولـو څخه يې جوړوي.

**قنداغ** (qundáǧ) نر.م. و ګ. كونداغ.

**قندانۍ** (qandānáy) ښـځ.م. و ګ. : خـوږه نۍ، كندانۍ.

**قندي** (qandí) ص. نب. نـر. ښـځ. م.ج. د قند، په قندي موادو اړوند، له قنده جوړ.

**قنديل** (qandíl) نر.م. كنېدل، ۱) څـراغ، چـراغ؛ ۲) ډيوټ، مشال، مصباح، څراغدان.

**قنې** (qáṇay) نر.م. ګرنګ، د پزې غليظه مايع.

**قو** (qū) نـر.م. يو ډول لوى مـرغه دى چې د هيلۍ له كورنۍ څخه دى او سپينې بڼكې لري.

**قوا** (quwá) ښځ. ج. قوى د (قوه) جمع.

**قـواره** (qawārá) ښـځ.م. ۱) جـوله، كـره وره؛ ۲) شكل؛ ۳) مج. مسخه (څېره)، ناټک.

**قـواعد** (qawāʕíd) ښـځ.ج. ۱) د قـاعده جمع؛ ۲) نر.م. جمع نظام، پرېډ، رسم ګذشت.

**قوال** (qawā́l) ص. نر. م. (ج. قوالان) ۱) ژبه ور، خوله ور؛ ۲) د ښې وراشې ښېښتن؛ ۳) مطرب، قوالي ويونكى؛ ٤) ديوې قبيلې نوم دى.

**قوالي** (qawālí) ښځ.م. ۱) ژبه ورتوب، خبرلوڅي؛ ۲) د قوالي كسب؛ ۳) مداحي؛ ٤) په موسيقۍ كې يو طرز دى.

**قوام**[1] (qıwā́m) نر.م. متـه، ستن، نظام، په چا چې كوم كار قايم وي.

**قـوام**[2] (qawā́m) نـر.م. ۱) نيـاو؛ ۲) ربښـتيا؛ ۳) اعتدال؛ ٤) قامت؛ ۵) ټينګښت؛ ٦) دوام، پايښت.

**قواى كار** (quwāyıkā́r) نر.م. دكارقوا، هغه كسان چې په ډله ييزه توګه د دولت له خوا د عامه ګټو كارونه سرته رسوي.

**قوت**[1] (quwát) نر.م. قوه؛ ۱) زور، سيک، متره، طاقت؛ ۲) د فعل د صادرېدو مبدأ.

**قوت**[2] (qūt) جن. ۱) خواره، روزي، غذا، طعام؛ ۲) هغه اندازه خواړه چې بدن پرې وده كوي.

**قوتناک** (quwátnā́k) ص.نر.م.ج. دقوت خاوند، د زور ښېښتن، زورور سيكمن.

**قوتۍ** (qutáy) ښځ.م. و ګ. كوتۍ.

**قوده** (qawdá) ښځ.م. و ګ. كوده.

**قورمه** (qormá) ښځ.م. و ګ. غورمه.

**قوريه** (quryá) ښځ.م. ځوغلى، بزغلى، نيال.

**قوس قزح** (qawsıquzáh) نر.م. و ګ. سره وشنه زرغونه، بوډۍ تال، سره و شنه كاسه.

قوسي (qawsí) ص.نب. نر. ښځ. م.ج. د قوس، د قوس په څېر، منحني.

قوغالی (quǧā́lay) نر.م. وګ. کوغالی.

قول[۱] (qawl) نر.م. (ج. قولونه، اقوال) ۱) وینا، کلام؛ ۲) اعتقاد؛ ۳) تصنیف؛ ٤) ژمنه، تعهد.

قول[۲] (qol) نر.م. تاله، چور، نښاو، چول، کتی، کوتی، کوت؛ د غره وت (دره).

قول اردو (qolıurdū́) نر.م. ۱) ستر عسکري واحد ۲) له دوو فرقو څخه جوړ.

قولبه (qulbá) ښځ.م. وګ. يیوه.

قولنج (qūlánj) نر.م. قلنج، کولنج، د کولمې درد او مرض.

قوم (qawm) نر.م. (ج. قومونه، اقوام) قام، ملت، د قبیلو مجموعه.

قوماندان (qūmandā́n) نر.م. ۱) بولندوی، افسر؛ ۲) هر قومانده ورکوونکی.

قومانده (qumāndá) ښځ.م. بولۍ، امر، حکم.

قوم پرست (qawmparást) ص. نر.م ۱) پر قام مین، قام پالونکی؛ ۲) خېل یا طایفه پرست.

قومي (qawmí) ص. نر. ښځ.م. ۱) قامي، قوم، قوم ته منسوب؛ ۲) ملي، عوامي.

قومیت (qawmıyát) نر.م. ۱) قومي څرنګوالی، نېشنلیتي، قومي اړیکې، ملیت؛ ۲) قوم جوړېدنه.

قونسل (qunsál) نر.م. وګ. کونسل.

قوه (quwá) ښځ.م (ج. قوې، ق) ۱) وګ. قوت[۱]؛ ۲) وګ. قدرت؛ ۳) فز. هغه عامل چې متحرک جسم ساکن او ساکن متحرک کړي؛ ٤) یو نظامي واحد؛ ۵) زور، توان، جبر.

قوي (qawí) ص.نب. د قوې یا قوت خاوند، زورور، غښتلی، مروج، ځانباندی.

قهار (qahā́r) ص. نر.م.ج. ۱) دېر غالب، سخت برلاسی؛ ۲) انتقام اخیستونکی؛ ۳) د رب (ج) یو نوم دی.

قهر (qáhár) نر.م. قار؛ ۱) خوشکه، غضب، غوسه؛ ۲) برلاسېدنه؛ ۳) عذاب، تنبیه؛ ٤) بدله.

قهراً (qáhrán) ق. په قهر سره، په خوشکه، د قهر په توګه.

قهرجن (qahərján) ص. نر.م.ج. خوشکتی، وچ، قارجن، غوسه ناک.

قهرژلی (qahárẑəlay) نر.م. قهرناک، غوسه، پرغزناک، پاربدلی.

قهرمان (qahramā́n) ص. نر.م.ج. اتل، ۱) هغه څوک چې ستر زور او قدرت لري؛ ۲) اد. عمده لوبغاړی، محوري پرسوناژ، هېرو؛ ۳) نامي، نومیالی.

قهرول (qahrawál) مص. مت. قارول، دردول، عصبي کول، غوسه کول.

قهري (qahrí) ص. نب. ۱) د قهر، قهر ته منسوب؛ ۲) مرور، خفه، خوابدي.

قهرېدل (qahredál) مص.ل. قارېدل، په قهر کېدل، په خوشکه کېدل، عصبي کېدل.

قهریه (qahrıyá) ص.نب. ۱) د قهر، په قهر اړوند؛ ۲) جبري، دزور؛

قهقرا (qahqarā́) ښځ.م. قهقهرى؛ ۱) کښه لېچى، شاته تګ، پرشا تګ؛ ۲) ارتجاع.

قهقهه (qahqahá) ښځ.م. کتکتی، په کټ کټ خندا، کتهار، په لوړ اواز خندا.

قهوه (qahwá) جن. ښځ.م. (ج. قهوې) کافي؛ یو ښه بوی لرونکی څښاک دی چې رنګ یې زرغون یا تېز نسواري دی او د قهوې د ونې له دانو څخه جوړېږي.

**قهوه خونه** (qahwáxūná) ښځ.م. قهوه ځی، د قهوې ښبلو، خرڅولو او جوړولو ځای.

**قهوه يي** (qahwáyí) ص. نب. نر. ښځ. م ۱) تېز نسواري رنګ؛ ۲) په قهوې اړوند.

**قی** (qay) نر.م. ګرځون، لوست، کانګه، خوړ، استفراق.

**قيادت** (qıyādát) نر.م. ۱) لارښودنه، رهبري؛ ۲) پېشوايي، مشري، بومياګلوي.

**قياس** (qıyás) نر.م. ۱) سنجش، اندازه اخيستنه؛ ۲) اټکل، حدس، تخمين.

**قياسول** (qıasawə́l) مص. مت. ۱) د ورته والي له مخه يو شی د بل شي سره سنجول؛ ۲) اندازه اخيستل؛ ۳) اټکلول، تخمينول.

**قياسي** (qıyasí) ص. نب. نر. ښځ.م. ۱) په قياس اړوند، د قياس؛ ۲) د سنجش؛ ۳) اټکلي، تخميني.

**قيافه** (qıyfá) ښځ.م. ۱) څېره، جوله، بڼه، شکل؛ ۲) رد پېژندنه، اثر پوهنه.

**قيام** (qıyám) نر.م. ۱) پاڅون، درېدنه، ولاړېدنه؛ ۲) د ظلم و زور پرضد د خلکو پاڅون؛ ۳) په شرعه کې: په لمانځه کې ولاړې ته وايي.

**قيامت** (qıyāmát) نر.م. ۱) محشر، لويه ورځ، آخره ورځ، د قيامت ورځ؛ ۲) پس له مرګه بېرته پورته کېدل.

**قيامت ګلی** (qıyāmát gwə́lay) نر.م. يو ډول ژېړ ګل دی.

**قيپړ** (qıpáṛ) نر.م. چکړ، چيکړ، ډېرې او ناولې ختې.

**قيچ** (qič) ص. نر.م. ج. کانګ، چقی، کرېنګ، کوږ، سترګی، چيک، چيغر، چغر.

**قيچي** (qayčí) ښځ.م. و ګ. بياتي.

**قيد** (qayd) نر.م. (ج. قيدونه، قيود) ۱) بندېښت، محدوديت، خنډ؛ ۲) زنداني کېدنه؛ ۳) د بند تېرولو موده؛ ٤) ص. نر.م. بند، محصور؛ ۵) شرط، پيمان؛ ٦) مقدار، اندازه؛ ۷) تر روي د مخه ساکن توری.

**قيد خونه** (qaydxūná) ښح.م. ايسارځی، زندان.

**قيدول** (qaydawə́l) مص. مت ۱) بندول، محدودول ۲) زنداني کول؛ ۳) په عذابول؛ ٤) په اندراج يا کوم يادښت کې يوه موضوع ثبتول؛ ۵) تړل.

**قيدي** (qaydí) نر. ښځ. م. ۱) بندي، محبوس، زنداني؛ ۲) ص. نب. په قيد اړوند.

**قيدېدل** (qaydedə́l) مص. ل ۱) بندېدل، محدودېدل ۲) زنداني کېدل؛ ۳) په تنګېدل؛ ٤) په اندراج کې ثبتېدل؛ ۵) تړل کېدل يا کولپېدل.

**قير** (qir) جن. ډامبر، تارکول، قطران؛ يوه ګاټه، سرېښناکه، توره مايع ده چې تند بوی لري او زياتره ورڅخه د سړکونو په جوړولو کې کار اخلي.

**قيراط** (qirát) نر.م. دا د يوه نبات د دانې نوم دی چې پخوا به يې د اصيلو فلزو او قيمتي ډبرو د تللو لپاره استعمالوله.

**قيرول** (qirawə́l) مص. مت. قير کول، ډامبرول، اسفالتول، پخول.

**قيرېدل** (qiredə́l) مص. ل. قير کېدل، ډامبرېدل، اسفالتېدل، پخېدل.

**قيزه** (qayzá) ښځ.م. کيزه، ملونې، ملونه، واګې.

**قيس** (qays) نر.م. ۱) قياسول؛ ۲) په ناز او کرشمه پر لارې تګ؛ ۳) قيس عامري، مجنون.

**قيسر** (qaysár) نر.م. برګير، د آس او خره يو ډول ناروغي ده.

**قيسي** (qaysí) نر.م. و ګ. کيسي.

**قیصر** (qaysár) نر.م. کیسر؛ ۱) امپراتور؛ ۲) د روم امپراتورۍ د واکمنانو لقب؛ ۳) زار، څار، تزار، د تزاري روسیې د واکمنو لقب؛ ٤) د یوې ناروغۍ نوم دی چې خېټه پکې غټېږي او وجود درد کوي.

**قیف** (qif) نر.م. و گ. شوراېي.

**قیم**[۱] (qıyám) نر.م. ج. د قیمت جمع.

**قیم**[۲] (qayím) ص. نر.م. ۱) سرپرست؛ ۲) د وقف متولي؛ ۳) د یتیم سرپرست.

**قیماق چای** (qaymāqčāy) جن. کیماغ چای، قیماغ چای، یو راز څښاک دی.

**قیمت** (qaymát) نر.م. (ج. قیمتونه) ۱) نرخ، بیه، ارزش، ارزښت؛ ۲) ص. نر.م. ج. گران، د لوړې بیې.

**قیمتدار** (qimatdā́r) نر.م. و گ. قیمتي.

**قیمتول** (qimatawə́l) مص. مت. ۱) بیه کول، نرخ معلومول؛ ۲) گرانول، بیه جگول.

**قیمتي** (qimatí) نر.ښځ.م. ج. ۱) گران، د جگې بیې لرونکی، قیمتداره؛ ۲) ښځ.م. گراني، د نرخونو جگوالی، د لوړ نرخ؛ ۳) قیمتداره، عالي، مفید، د لوړ ارزښت لرونکی.

**قیمومیت** (qaymūmyát) نر.م. میندیټ، ترستي شیپ، سرپرستي، یو نړیوال جوړښت دی چې د هغه په موجب دولتونه د قیم په عنوان، د ملگرو ملتو تر نظارت لاندې د خاصو ځمکو د ادارې لپاره ځینې ژمنې کوي چې دغه ځمکې به خود مختارۍ یا استقلال ته رسوي.

**قیمه** (qaymá) ښځ.م. ورزلی، ورژلی، تکولی، سوکلی؛ تکولې شوې غوښې (کوفته).

**قین** (qin) نر.م. یو ډول شکنجه.

**قینچي** (qanynčí) ښځ.م. و گ. بیاتي.

**قیوم** (qayū́m) ص. نر.م. ج. ۱) قایم، دایم، ډېر قایم بالذات؛ ۲) د څښتن تعالی یو نوم دی.

# ک

**ک** (kā(f,p)) نــر.م. ک، د پښتوالفبې درې دېرشم توری دی. ابجدي ارزښت يې « ۲۰ » دی.

**کا** (kā) ف. کــوي؛ ۱) د «کول» له مصدره جوړ او د حــال د فعل اسـتمراري حــالت ښکاره کــوي؛ ۲) ښځ.م. خارښت، تخمار ،بخار ، کهه ،تخور؛ ۳) نر.م. دطبلې يوه اواز ته وضع شوی لفظ دی.

**کابر** (kābár) نر.م. يوه اوسپنيزه آله ده چې د هغې سره د اوبن کته له وښو او لوخو څخه ړ کوي.

**کابل ټايمز** (kābálṭāymz) نــر.م. پــه انګـريزي ژبه يوه ورځپانه ده چې د ۱۳٤۰ش کال د باختر آژانس رياست تأسيسه کړې ده؛

**کابل کالنی** (kabálkālanáy) يــوه خپـرونـه ده چې په کال يو پلا په کابل کې خپرېـږي. لـومړی ځل په ۱۳۱۱ش کال کې ادبي انجمن خپره کړه.

**کابل مجله** (kabálmūjalá) يوه مجله ده چې له ۱۳۱۰ لمريز کال څخه را په دې خوا په مياشت کې يو ځل د پښتو ټولنې (اوس د افغانسـتان د علومو اکاډمۍ) له خوا له چاپه راوځي.

**کابلۍ** (kābláy) ښـځ.م. د اميرعبدالرحمن خان د زمانې يوه سکه وه چې ٦۰ پيسې کېده.

**کابو** (kābū́) ق. قابو؛ ۱) نـبـږدې، نژدې، څـهـرمه؛ ۲) شا وخوا ،تقريباً؛ ۳) په ځو ، څاری، متوجه؛ ٤) نر.م. واک، اختيار ، طاقت.

**کابوس** (kābū́s) نر.م. خپسکه، قپسه، ننګځه، کپسه، خپسه، خپسکی.

**کابين** (kābín) نــر.م. ۱) کاويـن، کابـن، مـهـر؛ ۲) کيبين؛ کوډل، جونګړه؛ ۲) په کښتۍ کې د کښتۍ دافسر کوټه؛ ۳) په الوتکه کې مسافرانو لپاره يو محاط ځای.

**کابينه** (kābiná) ښـځ.م. ۱) د وزيرانو پلاوی، د دولت د وزيـرانو ټـولی؛ ۲) د کوچنيو شيانو محفظه؛ ۳) د سلا مشورې کوټه.

کاپر (kāp(a,ı)r) ص. نر.م.ج. و گ. کافر.
کاپرازغی (kāpárazğáy) نر.م. کاپراغزی، یو ډول خرازغن بوټی دی.
کاپرچټ (kāp(ı,a)rčát) نر.م. د تبرګي یا لویې چړې په څېر د یوې تېرې وسلې نوم دی.
کاپرخولی (kapárxwálay) نر.م. یو ډول مرخېړی دی چې تنکي یې خلک خوري.
کاپرګل (kāpargwál) نـر.م. لمرګلی، آفتاب پرست ګل.
کاپري (kāparí) جن. ۱) یو ډول غنم دي؛ ۲) جسماً کوچنی.
کاپریل (kāprél) نر.م. پچه، د کلالي فابریکه، د کاشیو جوړولو کارخونه.
کاپي (kāpí) ص. نب. نقل، سواد، نمونه، نسخه؛ ۱) په کاربون پیپر، ټایپ یا ... سره د یوه متن عیني نمونه اخیستل؛ ۲) نظیر، مثل.
کاپیټال (kāpiṭál) نـر.م. کیپټل؛ ۱) و ګ. پانګه؛ ۲) د ستون سر یا پیل؛ ۳) ص. نر.م.ج. ستر، عمده، مهم؛ ٤) مرکز، پلازمېنه؛ ٥) د پانګوالو طبقه.
کاپي رایټ (kāpiráyṭ) نـر.م. د چـاپ حق، د تقلید حق.
کاپیړه (kāpiṛá) ص.نب. ۱) مزی، شلند، قوي، چاغ؛ ۲) ژبوره ښځه.
کات (kāt) نر.م. ب یاتي، قیچي، کاز.
کاتب (kātíb) ص.نر.م (ج. کاتبان) ۱) لیکونکی، د چاچې کار لیکل وي؛ ۲) په مـاموریت کې د ابتدایي درجې مامور؛ ۳) ادیب او پوه.
کاتره (kātrá) نر.م. لوی کندو، غټه خمبه.
کاتری (kātráy) ښځ.م. کـوچنی لـور، لـورکی، لورګنکی.

کاتک (kāták) نر.م. کتک، کاتی، تر آسو وروسته میاشت؛ د هندي کال اوومه میاشت.
کاتل (kātál) مص. مت. په بیاتي پرې کول.
کاتلی (kātaláy) نر.م. کیشپ، کشپ، شکرتتی، کاسه ګرب، کشو.
کاتولیک (kātolík) نر.م.ج. ۱) عمومي، نړیوال؛ ۲) لبرال؛ ۳) د عمومي عیسوي کلیسا یو غړی.
کاته (kātá) ف. ۱) د غایب مفرد استمراري ماضي صیغه ده چې د کـتل لـه مصدره جـوړېږي؛ ۲) نـر.ج. لیدنه، کـتنه؛ ۳) ښـځ.م. دفتـر؛ ۲) دستورالعمل؛ ٤) تجارتي معامله.
کاتی (kātəy) ښځ.م. و ګ. کاتک.
کاتي (kāti) ښځ.م. زموږ د هېواد په ژبو کې یوه ژبه ده چې زیاتره په نورستان کې پرې ږغېږي.
کاټ (kāṭ) ص. نر.م. ج. ۱) مطلوب لوري ته برابر، ګرځېدلی، مخ ګرځولی؛ ۲) منفي، تفریق شوی.
کاټلی (kāṭláy) نر.م. د ښکاري توپک کارتوس.
کاټول (kāṭawál) مص.مت ۱) مـوټر مطلـوب لوري ته ګرځول، استرینګ تاوول؛ ۲) تفریقول
کاټی (kāṭáy) نـر.م. ۱) د زین کاټی، د زین لرګی؛ ۲) متاک بادام؛ ۳) تبغ.
کاټي (kāṭí) ښځ.م ۱) موټر راګرځونه؛ ۲) مفروق.
کاټیاله (kāṭyálá) ښځ.م. لویه ویاله، لوی نهر، پاتاو.
کاټېری (kāṭeráy) ښـځ.م. ارکاره، کـرېښې، کټېری، کوړخو، کړخو، لاغو، کرچی.
کاج (kāj) نر.م ۱) و ګ. ناجو؛ ۲) څېره؛ ۳) څپک، چپک؛ ٤) کاشکې، ګوندې؛ ٥) غوراشه.
کاجـر (kājár) ص. نـر.م. چـغـر، پټ سترګی، زړ سترګی، زړی، برګ سترګی.
کاچ (kāč) نـر.م. ۱) ابس ډنډی، اس ډنډی، ډی؛ کاکیشکی، یو ډول لوبه ده؛ ۲) د تنې سوری.

**کاچوغړکه** (kāčūgaṛáka) ښځ.م. میرگاټی، میر؛ د ګاټو په لویه کې یو چال دی.

**کاچوغکه** (kacugaka) ښځ.م. یو ډول اغزن او ډېر تریخ بوټی دی.

**کاچوغه** (kāčūga) ښځ.م. (ج. کاچوغې) کاندی، سبېی، کاشوغه، قاشقه.

**کاچه** (káča) ښځ.م ۱) کچه، حد، اندازه؛ ۲) تشبیه، ورته بلل یا ګڼل.

**کاڅل** (kācál) مص. مت. اودل، اوبدل.

**کاڅوړی** (kācúṛay) نر.م. یو ډول بوټی دی. ښخ یې پوښلرې او سپین دی.

**کاڅی** (kācáy) ښځ.م. کوڅی، پتبق، کاسی، د مچوغنزې او لیندۍ د تیرې اینښوولو ځای.

**کاڅی** (kācay) نر.م. د جولا ړمنځ، دد وړ د اوبدلو د کارڅی، ړمنځ.

**کاخت** (kāxt) نر.م. ۱) قحط؛ نه پیدا کېدونکی؛ ۲) نر.م. ج. د غذایي موادو... نه پیدا کېدنه.

**کاختي** (kāxtí) ښځ.م. ۱) قحطي؛ ۲) دغذایي موادو او... نه پیدا کېدنه.

**کادر** (kādár) نر.م وګ. کدر(۲).

**کادری** (kādráy) نر.م. ۱) شاتینګی، تینګه، توسکی؛ ۲) اونت، د ښاروي لرې او کولمې.

**کادمی** (kādmáy) نر.م. د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**کاډو** (kāḍó) ص. نب. (مو.) کهاډو، شپېږ سریزه (راګ)، د شپږو سرو؛

**کاډیستر** (kāḍistər) نر.م. کډیستر، کاډستر، د مالیې لپاره د عامه ځمکو د پراخوالي، قیمت او ملکیت ثبتونه.

**کاذب** (kāzíb) ص. نر.م.ج. درواغجن، دروغجن، دروغژن، سوړن.

**کار** (kār) نر.م (ج. کارونه) ۱) چار، کسب، پېشه، شغل؛ ۲) فعل، عمل؛ ۳) تمرین؛ ٤) چلند، کردار؛ ٥) صنعت، هنر؛ ٦) مهارت، ممارست.

**کارازمایلی** (kārazmáyəlay) ازمېښتکار، وتلی، تجربه کار.

**کاراوزار** (kárawzār) نر.م. کارلوښي، کارسامان، وسایل.

**کارباړه** (kārbāṛá) ښځ.م. لاسباړه، د کار اجرت، حق الزحمه.

**کاربشپړ** (kārbašpaṛ) کارپای، ترپای بشپړ، کارتمامی.

**کاربندی** (kārbandáy) کاربندي، د کار نه کولو اعتصاب.

**کاربون پېپر** (kārbūnpepár) نر.م.ج. کارین پېپر، ابری، د کاربون کاغذ.

**کاربېسکه** (kārbéska) ښځ.م. کاربوسکه، کرسکه، مالوچ، پنبه، پومبه.

**کارپوه** (kārpōh) کارپېژاند، کاردان.

**کارتوس** (kārtús) نر.م. کرتوس، کرتوس، کالتوس، کارطوس، ګولۍ، مرمۍ.

**کارته** (kārtá) ښځ.م. (ج. کارتې) ۱) مېنه، محله؛ ۲) چارټ، پلان، کارډ.

**کارټ** (kārṭ) نر.م. کارډ، کارت؛ نازکه مقوا په تېره: پټه، پست کارت، بلن لیک او...

**کارټن** (kārṭán) نر.م. کارتن، ۱) مقوایي سوندخ؛ ۲) ددې سوندخ محتوا؛ ۳) مقوا..

**کارټوګراف** (kārṭográf) نر.م. کارټوګرافر، څوک چې د نقشو او چارټو د کښلو دنده ترسره کوي.

**کارټوګرافي** (kārṭográfí) ښځ.م. ۱) د نقشې کښلو پوهنه، د نقشې یا خریطې ایستلو علم؛ اړوند موسسه یې.

کارتوګرام (kārtogrā́m) نر.م. کارتوګریم، هغه نقشه چې جغرافیايي ستاتیمیکس د کرښو، ټکو، سیورنو ساحو... په مرسته ښيي.

کارټون (kārṭū́n) نر.م. پېښنځری، کاریکاتور.

کارټوني فلم (kārṭonífílm) ص.نب. له انځورو او تصویرو څخه جوړ شوی فلم چې پوهنیز، کومیک، د زده کړې... مسایل تمثیلوي.

کارجوړی (kārjōṛay) ص.نب.نر.م. کارجوړوونکی، څوک چې وران او خراب کارونه سموي.

کارځای (kārjā́y) ددندې یا کارځای، کارخونه، کارمحل.

کارچلونه (kārčalawána) ښځ.م. کارروانونه، چاره کونګ، چاره سازي.

کارخونه (kārxūná) ښځ.م. ۱) وګ. فابریکه؛ ۲) شاپ، دکان؛ ۳) پخلنځی.

کاردار (kārdā́r) ص.نر.م.ج ۱) وګ. کارسموني ۲) وګ. شارژدافیر؛ ۳) وزیر؛ ٤) حاکم.

کارداري (kārdā́ri) ښځ.م. ۱) کارداني، په کار کې مهارت؛ ۲) مج. وظیفه، ماموریت.

کاردان (kārdā́n) ص. نر.م. ج. ۱) کارسمووني، کارپوه، تجربه کار؛ ۲) مامور، پازه وال.

کارداني (kārdā́ni) ښځ.م. ۱) کارپوهه؛ ۲) پوهه، هوښیاري، ځیرکي.

کاردود (kārdṓd) کارډول، د کار طریقه، میتود.

کارډ (kārḍ) نر.م. وګ. کارټ.

کارډګر (kārḍagár) د کار ساحه، د کار ځانګه، کارمیدان.

کارډیوګراف (kārḍıyográ́f) نر.م. کارډیه ګریف؛ یوه آله ده چې د زړه د عمل ګراف اخلي.

کارډیوګرام (kārḍıyográ́m) نر.م. کارډیه ګریم، د زړه د عمل یا خوځښدو یو ریکارډ.

کارروایي (kārrawayí) ښځ.م. ۱) کړنه، کړه، اجراآت، کارچلونه؛ ۲) عمل، پروسیجر.

کارزار (kārzā́r) نر.م. ۱) شخړه، جګړه، جدال؛ ۲) د جګړې ډګر.

کارساز (kārsā́z) نر.م.ج. ۱) کارسمووني، چاره ساز، کارسمونکی، کارچلوونکی؛ ۲) مج. پاک خدای.

کارسموني (kārsamū́ṇay) نر.م. ۱) کاري، ماهر، کارپوه، کارداره؛ ۲) مامور، پازه وال.

کارسیالي (kārsyā́lí) د کار مسابقه.

کارښت (kārəṣ́t) نر.م. ۱) وګ. کارخونه ۲) هغه آله چې له انګورو پرې اوبه راوباسي.

کارغه (kārğá) نر.م. (ج. کارغان) کارګه، وروغ، کراغ، وراغ، قارغه، یو ډول تور مرغه دی.

کارغه پسکی (kārğápaskáy) ښځ.م. قپسه، قپسی، غوا بیژه، شاپیتی، حلزون.

کارغه پل (kārğapál) نر.م.ج. کارغه پاپی، یو ډول بوټی دی چې پاڼې یې د کارغه د پنجو غوندې دي.

کارغه ټونګه (kārğáṭū́nga) ښځ.م. یو ډول غاټول (ریدي) دی. شین ګل کوي.

کارفرما (kārfarmā́) نر.م.ج. د کار امر، حاکم، د کارښتن، هغه څوک چې چاته کار فرمایي.

کارک (kārk) نر.م. وګ. کاک ٤).

کارکړن (kārkṛán) کړنچار، کړنه، کردار، عملکرد.

کارکوټی (kārkūṭay) نر.م. کاکوټی، یو ډول وابښه دی.

کارکونډی (kārkunḍay) ښځ.م. کاکونډی، یو بوټی دی چې د غوز په اندازه دانه نیسي.

کارکوونکی (kārkawū́nkay) فا.نر.م. کاریګر، زیارکښ.

**کارګاه** (kārgāh) ښځ.م. ۱) کارخونه؛ ۲) کډی، کنی، تنسته، د اوبدلو آله.

**کارګټه** (kārgáṭa) ښځ.م. د کار ګټه، کارمزد.

**کارګر** (kārgár) ص. نر.م.ج. وګ. کاریګر.

**کارګوټی** (kārgóṭay) نر.م. وړوکی کار، سپک کار، د کار مصغر.

**کارګه** (kārgá) نر.م. وګ. کارغه.

**کارګه ټکی** (kārgáṭakay) ښځ.م. پنډېرک، پنیرک، ټکسی، ټکلی، پنهرک، یو ډول سابه دي.

**کارنامه** (kārnāmá) ښځ.م. ۱) د یوه شخص د تېرو اعمالو په اړه لیکنه؛ ۲) توره، توپانی، د یوه چا ستر کار یا تاریخي چاره.

**کارند** (kāránd) فا.ص.نب. کاریګر، فعال، تکړه.

**کارنده** (kārәndá) ص. نب. د کارند مؤنث، کاریګره، فعاله، تکړه.

**کارنر** (kārnar) نر.م. د فوټبال په لوبه کې چې ګېند دخپل ګول په امتداد له کرښې څخه وباسي

**کارنېوال** (kārnewāl) نر.م. کارنهول، کارناوال؛ ۱) وګ. فستیوال[۱]؛ ۲) د مسیح(ع) د ظهور د اخترتفریحي ورځې.

**کاروالا** (kārwāla) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. د کار خاوند، کارپوه، د کار استعداد لرونکی.

**کاروان** (kārwān) نر. (ج. کاروانونه) ۱) جوپه، د سوداګرو، حاجیانو اوداسې نورو یوه ډله چې یو ځای سفر کوي؛ ۲) داوښانو، اسونو، موټرونو کتار.

**کاروان بوټی** (kārwānbuṭay) نر.م. یو ډول سارایي سپین بوټی دی.

**کاروان سرای** (kārwānsaráy) نر.م. د کاروان د تم کېدو ځای یا سرای.

**کاروانه** (kārwāná) ښځ.م. سرکاري دوږدی، کروانه، قروانه؛ ۱) هغه لوی دېګ چې د نظامي افرادو لپاره باندې شوی وي؛ ۲) هغه سرپوښ لرونکی ستل غوندې لوښی چې خواړه په کې وړي.

**کاروانی** (kārwāní) ص. نب. ۱) جوپه وال، په کاروان اړوند؛ ۲) د کاروان غړی.

**کاروایي** (kārwāyí) ښځ.م. وګ. کارروایي.

**کاروبار** (karūbār) نر.م. ۱) کار، کسب وکار؛ ۲) بوختیا، مصروفیت، مشغولیت.

**کاروباري** (karūbārí) ص نب. ۱) د کار خاوند، کاریګر، بوخت؛ ۲) مج. «تجار»، تاجر.

**کاروړ** (kārwaṛ) د کاروړ، د ګټې اخیستنې وړ، کارآمد.

**کاروزیار** (kārozyā́r) هڅه وهاند، کاروکوښښ، کاروزحمت، کاروکړاو.

**کارول** (kārawә́l) مص.مت ۱) استعمالول ۲) کار ترې اخیستل؛ ۳) لګول؛ ٤) ویاله پاکول یا ایستل.

**کارونځی** (kārawánjay) د کاروني ځای، د استعمال ځای.

**کارونوړ** (kārawánwaṛ) د کاروني یا استعمال وړ.

**کارونه** (kārawána) ښځ.م. کارول، استعمال.

**کاروېش** (kārweš) د کار وېش، د کار تقسیم.

**کاره** (kārá) ښځ.م. ۱) کاری، اوږده، کم سورې د لښتو جوړ شوې توکری؛ ۲) یو ډول ږدن دي؛ ۳) هرکاره، کړځی.

**کاری** (kāráy) ښځ.م. ۱) د انګورو کواره (سوده، کجاوه)؛ ۲) وګ. خلیج؛ ۳) وګ. کاره ۱).

**کاري** (kārí) ص. نب. ۱) کاریګر؛ ۲) د مهارت خاوند؛ ۳) د کار وړ؛ ٤) اغېزناک، مؤثر.

**کاریانه** (kāryāna) ښځ.م. یو ډول نبات دی چې د ږدنو او غوښتو په ځېر پاڼې کوي.

**کارېدل** (kāredál) مص. ل ۱) استعمالېدل؛ ۲) کار ځنې اخستل کېدل؛ ۳) مصرفېدل؛ ٤) د ویالې پاکېدل.

**کارېز** (kāréz) نر.م. ترځمکې لاندې د اوبو مجرا.

**کارېزک** (kārezák) نر.م. ۱) وگ. کارېزه؛ ۲) کاریږه، یو نبات دی چې ښه خوند لري.

**کارېزکن** (karezkan) نر.م. کارېزکیندونکی، کارېز ایستونکی.

**کارېزه** (kāreza) ښځ.م. کاهرېزه، کارېزی، کارېزک، یو ډول ازغن بوټی دی.

**کارېزي** (kārezí) ص. نب. ترکارېزلاندې، هغه ځمکه چې د کارېز په اوبو خړوبېږي.

**کارېږه** (kārežá) ښځ.م. وگ. کارېزک ۲).

**کاریس** (kārís) نر.م. د غاښونو چینجن والی، د غاښو چینجن توب.

**کاریکاتور** (kārikātór) نر.م ۱) وگ. کارتون؛ ۲) بدورته والی، قبیح شباهت؛ ۳) مسخره.

**کاریکاتوریست** (kārikā torist) نر.م.ج. د کارتون انځورگر، کاریکاتور کښونکی.

**کاریگر** (kārigár) ص.نر.م (ج. کاریگران) کارگر؛ ۱) کارکوونکی؛ ۲) کسبگر؛ ۳) ماهر، تکړه، لایق؛ ٤) زیارایستونکی، زیارکښ.

**کاریگري** (kārigəri) ښځ.م. ۱) کار، کارکول؛ ۲) کسب کول؛ ۳) مهارت، لاس درلودنه؛ ٤) ص. نب. په کاریگر اړوند.

**کارین** (kārín) نر.م. ۱) غرنۍ للمه ځمکه چې کله کله کرله کېږي؛ ۲) بې حاصله ځمکه.

**کاړ** (kāṛ) نر.م. شنکاړ، کرېږ، جغل.

**کاړساغ** (kāṛsāğ) نر.م.ج. وگ. کاړساو.

**کاړساو** (kāṛsáw) ص. نر.م.ج. کاړساغ، اوږد مخی سری چې په وجود خوار وي.

**کاړکاړ** (kāṛkāṛ) نر.م. نهایي بدحالي.

**کاړکوټ** (kāṛkúṭ) ص.نر.م.ج. گاړگوټې ویښته، گوړگوټې.

**کاړو** (kāṛū) نر.م. وگ. کاړي ۱).

**کاړوکوړ** (kāṛ(ū,o)kúṛ) نر.م. ۱) شور، ځوږ؛ ۲) د لوښو گډوډ اواز.

**کاړه** (kāṛa) جن. ۱) اوماچ، اماچ، کاړي؛ ۲) جن. کاړی، هغو اوبه چې په غلا متهم پرې معلوموي؛ ۳) ښځ.م. د درس گردان؛ ٤) کړه، عمل.

**کاړي**(1) (kāṛi) ص.نب. کاړو، کوفته، قیمه، تکېدلې، کوفته شوې غوښه.

**کاړي**(2) (kāṛí) جن. ۱) کړو، بلاوند، کاړه، لاوڼ، تودې شلومبې؛ ۲) جن. وگ. کاړه ۱)، ۲).

**کاړې** (kāṛé) ښځ.م. کاړه، د طالبانو د درس گردان.

**کاړۍ** (kāṛáy) ښځ.م. کاړه، کاړی، توکری، له لښتو جوړه توکرۍ.

**کاړین** (kāṛín) ص. نر.م.ج. د کاړ، کاړزینه، هغه ځای چې کاړ او تیږې لري.

**کاړینگ** (kāṛing) ص. نر.م. چیک، کوږسترگی، بهنگا، کرینگا، چپا، چنگره.

**کاړې واړې** (kāṛewāṛe) ص. نب. سست پست، لټ، تمبل، شاړ واړ، لټ پټ.

**کاز** (kāz) نر.م. ۱) بیاتي، قیچي؛ ۲) د ځنگلي ځناور غار؛ ۳) څېره، کوډۍ؛ ٤) جنغوزی؛ ۵) سمڅ، کندړ؛ ٦) وگ. قاز؛ ۷) ځله، شوق.

**کازمن** (kāzmán) نر.م. تلوسه لرونکی، لېوال، ارزومند، غوښتونکی.

**کازمني** (kāzmaní) لېوالتیا، څوېمني، علاقمندي.

**کازمیک** (kāzmík) ص.نر.م.ج. کوزمیک.

**کازي خر** (kāzixár) نر.م. زنځه، ماما غواګۍ، يو وړه حشره ده، د بړې پښې لري.

**کاږ** (kāẓ) ف. ۱) د کاږل او کښل فعلي بنسټ دی؛ ۲) نر.م. مينه، تلوسه، شوق.

**کاږبل** (kāẓbál) نر.م. کوږ، کږ بل، يو ځناور دی.

**کاږل** (kaẓəl) مص. مت. کښل، وښستل، ايستل، باسل، وکښل، راښکل.

**کاږه** (kāẓə́) نر.ج. خوږ ويلنی، کاږه ويلنی، باديان، کلوو.

**کاږه ويلنی** (kāẓə́wilánay) جن. باديان.

**کاسب** (kāsíb) ص. نر.م.ج ۱) کسبګر، د کسب خاوند؛ ۲) سوداګر؛ ۳) حاصلوونکی.

**کاسبرګ** (kāsbărg) نر.م. د طاسبرګ په قاعدو کې زرغونه پاڼه (و.ګ. طاسبرګ).

**کاست** (kāst) نر.م. ۱) دروه، درواغ؛ ۲) و.ګ. کاسټ.

**کاسټ** (kāsṭ) نر.م. کاست؛ صنف، طبقه، ذات، قوم، ذات پات، بَرن، د هند ارثي مذهبي فرقه.

**کاسټيک** (kāsṭík) ص. نر.م.ج. خوړونکی، فاسدوونکی، هغه چې د کيمياوي تعامل په وسيله ژوندی نسج له منځه وړلای شي.

**کاسني** (kāsní) جن. کاسنی، خربوله، تريزه، تريخه، سيګولی، شيګولی، يو ډول تريخ بوټی دی.

**کاسوڼی** (kāsúṇay) نر.م. يو ډول نبات دی چې سور ګل کوي، خلک يې خوږو ته پخوي.

**کاسه** (kāsá) ښځ.م. نس لرونکی مدور لوښی.

**کاسه ګرب** (kāsagṛáb) نر.م. کهشپ، کشپ، شمشتی.

**کاسي** (kāsí) نر.ج. کاسيان، په پښتنو کې د سړبن نيکه د دريم زوی اولاده.

**کاسۍ** (kāsə́y) ښځ.م. ګوتری، تاکی، پتق، پتېخ، د غولکې او ليندې د خرمنې توته.

**کاسير** (kāsír) نر.م.ج. بدلمنی، زناکار، زاني، بدسترګی.

**کاسيره** (kāsirá) ص. ښځ.م. ۱) بدکاره ښځه، بدلمنې، فاحشه؛ ۲) مرداره، پرشوق او ښتې؛ ۳) ښځ.م. و.ګ. کسيره؛ ۴) د «پاخه وېش» په سيستم کې د ځمکې داندازې مقياسي معياري واحد دی چې ديوې پيسې شلورمه برخه کېږي.

**کاسيري** (kāsirí) ښځ.م. کاسيروالی، بدلمنې، زناکاري.

**کاش** (kāš) ند. ۱) و.ګ. کشکې؛ ۲) نر.م. قاش، د تمانچې پوښ؛ ۳) د زين پوښ؛ ۴) توټه، پره، چنده.

**کاشری** (kāšráy) نر.م. و.ګ. کاشين ۱).

**کاشف** (kāšíf) نر.م.ج. ۱) کشف کوونکی، راښکاره کوونکی، راپېدا کوونکی.

**کاشکې** (kāške) ند. و.ګ. کشکې.

**کاشواز** (kāšwáz) نر.م.ج. ۱) کلانکار، مشروټ؛ ۲) مج. سوډر، احمق.

**کاشوغه** (kāšúğa) ښځ.م. و.ګ. کاچوغه.

**کاشي** (kāší) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. ۱) ساده يا نخش لرونکې او لعاب داره (خښته)، کاشين؛ ۲) نر.م.ج. کاشي کاري شوی.

**کاشيګر** (kāšigə́r) ص. نر.م. د کاشيو جوړولو کسبګر.

**کاشين** (kāšín) نر.م. ۱) کاشری، تغاره، لوی خاورين لوښی؛ ۲) و.ګ. کاشي ۱).

**کاظم** (kāzím) ص. نر.م. ۱) زغمونکی، درد سره تېرونکی؛ ۲) خاموش، ساکت.

**کاغ** (kāğ) ص. نر.م.ج. ۱) هوښيار، پوه، دانا؛ ۲) احتياط کاره؛ ۳) د کاغی اواز؛ ۲) کانګه؛ ۴) نر.م. و.ګ. کارګه.

**کاغتوب** (kāğtób) نر.م ۱) کاغ والی، هوښیاري، څیر ک توب؛ ۲) احتیاط.

**کاغذ** (kāğáz) نر.م. چغز، یوه نازکه، د تاوېدو او کتېدو ور ورقه (پاڼه) ده چې په لیکلو، چاپ، ډیکور... کې کار ځنې اخلي.

**کاغذ باد** (kāğazbád) نر.م. بادیوه، کاغزباد، پتنګ، ګوډي پران، ګوډی.

**کاغذ دانی** (kāğazdānáy) نر.م. هغه توکری یا لوښی چې ناکاره کاغذونه په کې اچوي.

**کاغذي** (kāğazí) ص. نب. نر. ښځ.م. ۱) په کاغذ اړوند؛ ۲) د نازک قشر لرونکی - کاغذي بادام؛ ۳) نر.م. لیک ورونکی.

**کاغل** (kāğál) نر.م. لست، لېست.

**کاغمه** (kāğmá) نر.م. قاقمه، قاغمه؛ ۱) یو ورین توکر دی؛ ۲) یو ډول نري او قیمتي تغر دی.

**کاغه** (kāğa) ښځ.م. و ګ. کاغی.

**کاغی** (kāğáy) ښځ.م. زاغچه، کواغی، توره، ترکارګه وره او حلاله مرغۍ ده مکوښه یې سره وي.

**کاف** (kāf) نر.م. د «ک» د توري اواز او تلفظ.

**کافر** (kāf(á,í)r) ص. نر.م. ج. (ج. کافران) کاپر، ۱) کفر کوونکی؛ ۲) بې ایمانه، بې دینه.

**کافرګل** (kāfirgwə́l) نر.م. و ګ. لمرګلی.

**کافري** (kāfirí) ښځ.م ۱) کفر، بې دیني، نامسلماني ۲) ص. نب. د کافر، کافر ته منسوب.

**کافور** (kāfúr) جن. یو ډول سپینه، الوتونکې ماده ده چې د کافور له ونې څخه لاس ته راځي.

**کافي** (kāfí) ښځ.م. کاپي؛ ۱) کافه، چای خونه، قهوه خونه؛ ۲) هوټل، رستوران؛ ۳) و ګ. قهوه ٤) ص. نب. نر. ښځ. مُ. بسیا، بس کېدونکی، بې نیازوونکی؛ ۵) نر.م. (مو.) د سرې راګ له پنځوو راګنیو څخه یوه سنګیر نه راګنی ده.

**کافین** (kāfín) جن. کې فیین، د قهوې جوهر؛ طبي دارو دی او په قهوه، ککو، چایو او کولا کې پیدا کېږي.

**کاک** (kāk) نر.م. کوک؛ ۱) په تیږه پخه شوې ډوډۍ؛ ۲) خوږه ډوډۍ؛ ۳) خیراتي ډوډۍ چې د وچکالۍ په وخت کې پخېږي؛ ٤) ځنګه، کارک، د کارک خولبوری، د کارک خولپوټی.

**کاکا** (kāká) نر.م. اکا، تره، د پلار ورور.

**کاکاو** (kākáw) ښځ.م. جن. و ګ. ککاو.

**کاکتوس** (kāktús) نر.م. و ګ. زقوم.

**کاکړی** (kākaṛáy) ص. ښځ.م. ج. کاکړۍ غاړې، کاکړۍ لنډۍ؛ چې له دوو مسریو څخه جوړ شوې دي. هره مسرۍ یې اته اته سېلابه لري.

**کاکک** (kākák) نر.م. کاکاګی، د کاکا مصغر.

**کاک کش** (kākkáš) نر.م. هغه آله چې د بوتل کاک پرې ایستل کېږي.

**کاکل** (kākúl) نر.م. ۱) پېکی، پچکه، پلکی، وربل، څونډۍ؛ ۲) ځنې؛ ۳) ګورګوټي ویښتان.

**کاکلي** (kākulí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) پېکی لرونکی، کاکل لرونکی؛ ۲) ځنور، څونور؛ ۳) ښځ. م. یوه حشره خوړونکې مرغۍ ده.

**کاکنج** (kākánj) جن. پړدن، غوښت غونډي یو ډول غله ده (و ګ. پړدن)

**کاکو** (kākó) نر.م. ۱) اکا، کاکا؛ ۲) مشر او سپین ږیري ته د احترام په ډول ویل کېږي.

**کاکوتي** (kākutí) ښځ.م. ج. کالکوتي، ویلنی، د یوه نبات خوشبویه او خوندوري پاڼې دي.

**کاکوړه** (kākoṛá) ښځ.م. ۱) پرسېدلی ځای؛ ۲) دُره بازي، یوه لوبه ده؛ ۳) منغوني؛ مرغوني؛ ٤) ترټري، تتله.

**کاکونډی** (kākūndáy) نر.م. کارکونډی، مرکونډی، یو سارایي اغزن بوټی دی.

**کاکی** (kākáy) ښځ.م ١) گونگټ، گونگټی، چاچی د خوشایي حشره؛ ٢) ښځو ته د احترام لقب.

**کاکي** (kākí) ښځ.م. کاکیچ، دی، کاکیشکی؛ د هلکانو یو ډول لوبه ده.

**کاکیچ** (kākéč) نر.م. وگ. کاکي.

**کاکیشکی** (kākíškay) نر.م. دی، کاکی، کاکیچ، د هلکانو یوه لوبه ده.

**کاګل**[1] (kāgə́l) نر.م. ١) لیو، اخیړ، رویکار؛ ٢) جن. ددغه کار مواد.

**کاګل**[2] (kāgal) نر.م. یو ډول نل دی چې په اوبو کې راشین کیږي.

**کال** (kāl) نر.م. (ج. کلونه) ١) د ٣٦٥ ورځو یوه دوره چې پر ١٢ میاشتو ویشلې ده؛ ٢) تلین؛ ٣) انکړ، اړه، ویره، منهو.

**کال ایندارهٔ** (kālindārá) ښځ.م. کال هینداره؛ ١) جنتري، کلیز؛ ٢) د یوه کال د پیښو یا چارو بیان یا راپورتاژ.

**کالباړه** (kālbāṛa) ښځ.م. کالنی معاش، کالنی اجوره. کلنی تنخوا.

**کالبد** (kālbūd) نر.م. کالبوت.

**کالبر** (kālbə́r) نر.م ١) وگ. کالیبر؛ ٢) سالبره، هغه ونه چې یو کال میوه کوي او بل کال یې نه کوي.

**کالبوت** (kālbūt) نر.م. کالبت، کالبد؛ ١) بدن، جسم، تن، پژی؛ ٢) جسد، بې اروا بدن.

**کالج** (kālíj) نر.م. (ج. کالجونه) ١) پوهنځی، د لوړو زده کړو موسسه؛ ٢) تر لسم ټولګی لوړه تعلیمی موسسه.

**کال خوا** (kālxwā́) ص. نب. کالخوایه، کالخا؛ ١) واکمن؛ ٢) اداره کوونکی، څارونکی.

**کال خوای** (kālxwāy) نر.م. ج. ١) د واک او اختیار څښتن؛ ٢) خیرخواه.

**کالدانه** (kāldāná) ښځ.م. سالدانه؛ یوه دانه ده چې د انسان پر بدن راخیژي.

**کالر** (kālár) نر.م. ١) د کمیس غاړه، ګریوان، د خت غاړه؛ ٢) د سپي یا آس د غاړې چرمي طوق.

**کالښود** (kālṣōd) نر.م. کلیز، کال هینداره، جنتري.

**کال غوټه** (kālğwaṭa) ښځ.م. کالیزه، تلین.

**کالک** (kālək) نر.م. وگ. کالکه.

**کالکچو** (kālakačū́) نر.م. ج. د مالوچو ډنډر، د مالوچو د بوټی ډونډی.

**کالکنډی** (kālkanḍáy) نر.م. وگ. کالکونډی.

**کالکوچ** (kālkūč) نر.م. ١) کوز؛ ٢) تاوراتاو، پیچلی، نغښتی؛ ٣) نر.م. مکر، فریب، چل.

**کالکوچکه** (kālkočáka) ښځ.م. کالکوچه، کالکوچي؛ ١) غوړدانګي؛ ٢) په یوه چاره کې خنډ پیدا کول.

**کالکوچن** (kālkočə́n) نر.م. کالکوچی؛ ١) چلي، دروهلی، چلباز؛ ٢) کړکیچن، جنجالي، سرتمبه ٣) پیچلی، مغلق؛ ٤) مج. کوږ.

**کالکولتیک** (kālkolıtík) نر.م. وگ. فلز.

**کالکونډی** (kālkūndáy) نر.م. ١) د ستمبول، کارکونډی؛ ٢) اوم ختکی، اومه خربوزه.

**کالکه** (kāláka) ښځ.م. تیپوسی، د پنبې غوزه، د مالوچو غوزه.

**کالکی** (kāləkáy) ښځ.م. د (پانی) ګیاه ته ورته یو ډول بوټی دی.

**کال ګټه** (kālgáṭa) ښځ.م. د کال ګټه، کالنی فایده، کلنی عاید.

**کالنی** (kālanáy) ص. نر.م ١) کلنی، په کال اړوند؛ ٢) ښځ.م. کالیز، تلین.

**کالنۍ** (kālanáy) ښځ.م.ج. کلنۍ خپرونه، کالنۍ نشریه، هغه خپرونه چې د یوه کال مهمې پېښې، مهم معلومات او... په لنده توګه په کې لیکلي شوي وي

**کالوري** (kālorí) ښځ.م(ج. کالورۍ) فز. کالري، کیلري، د تودوخې د مقدار یویز (واحد).

**کالوري میټر** (kālorimiṭár) نر.م. یوه آله ده چې د تودوخې مقدار معلوموي.

**کالوس** (kālū́s) ق. وګ. کالوسر.

**کالوسر** (kālusár) ق. کالوس، سروکال، ګرده کال، ټول کال.

**کالوني** (kāloní) ښځ.م. (ج. کالونۍ) کولوني؛ ۱) وګ. مستعمره؛ ۲) د سالرونکو اجسامو هر ګروپ؛ ۳) د ورتو باکټریاوو یو ګروپ.

**کاله** (kālá) نر.م. ۱) وګ. کهول؛ ۲) د کهول مغیره حالت.

**کال هینداره** (kālhindā́ra) ښځ.م. وګ. کالیز.

**کالي** (kālí) نر.ج. ۱) وسله؛ ۲) د کالی جمع.

**کالی** (kāláy) نر.م. ۱) جامه، لباس، پوښاک؛ ۲) ګانه، پسول، زیور؛ ۳) اسباب، سامان.

**کالیبر** (kālibә́r) نر.م. کالبر؛ ۱) اندازه، قالب؛ ۲) چاپ، د ټوپک، توپ د میل د خولې دوره؛ ۳) د ګولۍ، کارتوس د قطر اندازه.

**کالیز** (kālíz) نر.م. کال هینداره، جنتري، تقویم.

**کالیزه** (kālíza) ښځ.م. کلیزه، تلین، کالنۍ.

**کام** (kāṇ) نر.م. ۱) وګ. قوم؛ ۲) تالو، کومی، حلق؛ ۳) هدف، مرام، مقصد؛ ٤) یوه دانه ده چې د آس په تالو کې د اوربشو د نه ورکولو له امله پیدا کېږي.

**کامبوری** (kāmbū́ray) نر.م. ۱) د وښو او تاڼتو مېده ګی؛ ۲) لګر، کانګر؛ ۳) مج. بې کاره شي.

**کامبله** (kāmbelá) ښځ.م. کمبله، ګمبله؛ یوه ونه ده؛ د دغې ونې مېوه سرې دانې لري.

**کام پرست** (kāmparást) ص. نر.م.ج. پسر کام مین، کام خوښوونکی. د خپل قوم (قام، قبیله، ملت، خېل) سره مینه لرونکی.

**کام پروري** (kāmparwarí) ښځ.م. کام پالنه، د خپل قام (قوم، قبیله، ملت، خېل) پالنه.

**کامچه** (kāmča) ښځ.م. خمچه (ګوته)، ګچنې، خچنۍ، خچی، مچی، خنصر.

**کام خور** (kāmxór) نر.م. یو ډول غټ کب دی چې نور واړه کبان خوري.

**کامران** (kāmrā́n) ص.نر.م. ۱) بریالی، کامیابه؛ ۲) بختور، نېکمرغه؛ ۳) عیاش.

**کامګار** (kāmgā́r) ص. نر.م.ج. وګ. کامران.

**کامل** (kāmíl) ص. نر.م.ج. ۱) بشپړ، پوره؛ ۲) بې عیبه، بې نقصه.

**کاملاً** (kāmílán) ق. په کامله توګه، په بشپړ ډول، په پوره ډول، ګرده، ټول.

**کاملتوب** (kāmıltób) نر.م. بشپړوالی، کمال، کاملوالی.

**کاملول** (kāmılawә́l) مص. مت. تکمیلول، بشپړول، پوره کول، کمال ته رسول.

**کاملېدل** (kāmıledә́l) مص.ل. ۱) تکمیلېدل، بشپړېدل، پوره کېدل، کمال ته رسېدل.

**کام ناکام** (kā́mnākā́m) ق. اجباراً، په مجبوریت سره، د مجبوریت له مخې، خامخا.

**کامنویلت** (kāmənwílt) نر.م. ۱) دیوه ملت یا دولت ټول خلک؛ ۲) د خلکو حکومت، خپلواک حکومت؛ ۳) د خپلواکو دولتو اتحادیه؛ ٤) عامه هوساینه؛ ۵) ګډ ګټې، مشترک المنافع.

**کامود** (kāmód) نر.م. ) (مو. ) د دیپک راگ یوه راګني ده.

**کامه** (kāmá) ښځ.م. (تن. ) «وېرګول» ، ترونی، چپه پېښ؛ په لیک ښوکې داسې (،) یوه علامه ده؛ چې په لوستلو کې د لنډ توقف او د لیست د وله کلیمود بېلولو او...لپاره کارېږي.

**کامي** (kāmí) ص. نب. نر. ښځ. م. د کام، قامي، قومي، ملي، په کام اړوند.

**کامیاب** (kāmyā́b) نر.م.ج. بریالی، موفق، کامران، خپل هدف ته رسېدلی.

**کامیابول** (kāmyābawə́l) مص.مت. کامیاب کول، بریالی کول، موفقه کول، خپل هدف ته رسول.

**کامیابېدل** (kāmyābedə́l) مص. ل. بریالی کېدل، موفقېدل، هدف او هیلې ته رسېدل.

**کامیون** (kāmiyū́n) نر.م. ۱) درې، تیټه او کلکه عراده چې مالونه په کې وړي؛ ۲) واګون، ترک.

**کان** (kān) نر.م. (ج. کانونه) ۱) معدن، درنګ؛ ۲) نل، نی؛ ۳) پښت، نسل.

**کانا** (kāna) ص. نب. نر. ښځ.م.ج. کاڼا، بېړا، ساده، سودر، شوده.

**کانال** (kānā́l) نر.م. (ج. کانالونه) کینل؛ ۱) د اوبو رسولو یا بیولو لپاره اوبیزه مصنوعي لاره؛ ۲) نهر، پاتاو، لویه ویاله.

**کانپوهنه** (kānpohana) ښځ.م. کانپېژندنه، معدن پېژندنه.

**کانپېژاند** (kānpežand) فا. نر.م. کانپوه، معدنپوه، د کان متخصص.

**کانتار** (kāntā́r) نر.م. غټه چونګښه، لویه ژېړه چونګښه.

**کانتور** (kāntū́r) نر.م. کونتور، خاکه، طرحه، دیوه شکل، کتلې، خاورې... خاکه.

**کانټه** (kāntá) ښځ.م. ۱) لویه جارو؛ ۲) د شولو یو مرض دی؛ ۳) پنجه، د وږي خوړلو پنجه.

**کانټی** (kāntay) ښځ.م. ۱) ادانه، کوڅر، دوتنه، د کتاب پوښ؛ ۲) تاپوره، د تخرګ امسا؛ ۳) د زین کاټی؛ ٤) تېکی، نیام.

**کانټین** (kāntín) نر.م. کینټین؛ هغه دوکان چې د ښوونځی، پوهنتون، عسکر کوټ، محبس، روغتون او یا ... په غولې کې وي.

**کانجر** (kānjár) ص. نر.م.ج. هغه څوک چې بانه یې د ېر زیات او په غیر طبیعي توګه رېږي.

**کانجڼ** (kānjə́n) نر.م. ۱) د ارهټ غټ عمودي میل ۲) ص. نر.م.ج. کوږ وږ (سری).

**کاندۍ** (kāndə́y) ښځ.م. سیپی، کاچوغه، قاشقه.

**کاندي** (kā́ndi) ف ۱) کوي، د استمراري حال صیغه ده؛ ۲) کېږي، د راتلونکي زماني یوه صیغه ده، د غایب مفرد او جمعي لپاره راځي.

**کاندی** (kānday) نر.م. ۱) لرګین کندو؛ ۲) کاندی یا کانه د سرکندی (یو ډول وابښه) په مانا «ظفر اللغات» اخیستی دی.

**کاندید** (kāndíd) ص. نر.م.ج. نوماند، کاندیدا، ولاړ، درېدلی، داوطلب، نامزد.

**کاندیدول** (kāndidawə́l) مص.مت. نوماندول، داوطلب کول، درول، نامزدول.

**کانډال** (kānḍā́l) نر.م. کنډول، کودی، کودړی، د خاورین لوښي ینډ کودرکی، خاورین ماټ لوښی.

**کانډکټر** (kānḍaktə́r) ص. نر.م.ج. ۱) لاربنود، رهنما؛ ۲) د موزیک لاربنود؛ ۳) د سرویس نګران؛ ٤) د برق د جریان تېروونکی جسم.

**کانډوله** (kānḍóla) ښځ.م. یو ډول غرنی نبات دی، ښخ یې د پتاټې غوندې دی.

**کانډیاتي** (kānḍyāti) جن. کنډیاتی، اوم کنډ، خام کنډ، کنډ، کنډا.

**کانډیال** (kānḍyā́l) نر.م. د بوربوکي د کورنۍ یو ډول خړ، بې پاڼو او شیدي لرونکی نبات دی.

**کانره** (kānarā́) ښځ.م. (مو.) کانهرا، کانهره، کانره، د دیپک یوه راګني ده..

**کانسرو** (kānsā́rw) جن. و ګ. کنسروه.

**کانسوننټ** (kānsūnə́nṭ) نر.م. صامت، اصلي غږ؛ ۱) هغه اواز چې د هغه د ادا کولو پروخت د صوتي اعضاوو د تماس له امله د هوا په جریان کې انسداد یا بندښت پېښ شي؛ ۲) په تون کې هارموني لرونکی.

**کانغوزک** (kānǧuzák) نر.م. تمبور، د مرغۍ نیولو لومه چې په غونداري ختنه کې ایښودل کېږي.

**کانفډرېشن** (kānfiḍrĕšə́n) نر.م. کانفدراسیون، اتفاق، یووالی، یولاس کېدنه؛ ۱) د څو تنظیمو یوون؛ ۲) دخپل منځي مرستې دفاع او...د څو دولتو یوون (اتحاد).

**کانفلور** (kānflór) جن. کارن فلور، د پیرنې اوړه، ددانو غلو اوړه، د یو ډول جوارو اوړه.

**کانکرت** (kānkrə́t) نر.م. باتور، روبهدر، د باز د کورنۍ یو ښکاري مرغه دی.

**کانکرېټ** (kānkréṭ) جن. کانګرېټ؛ یوه ډېره کلکه او سخته ماده ده چې د شګو، سیمنټ او اوبو له ګډون څخه جوړېږي.

**کانکرېټول** (kānkreṭawā́l) مص. مت. ۱) له کانګرېټ څخه جوړول؛ ۲) مشخصول، ټاکل؛ ۳) مج. کلکول، سختول.

**کانډړ** (kānḍáṛ) ص.نر.م.ج. ۱) کانګړ، مړاوی، زمول؛ ۲) بې پاڼو ډنډرې؛ و ګ. کامبوری.

**کانکن** (kankan) فا. نر.م. کان کیندونکی، کان ایستونکی.

**کانکور** (kānkór) نر.م. کنکور؛ ۱) په ازموینه کې د ګډون مسابقه، رقابتي ازموینه؛ ۲) ګډه مرسته؛ ٤) ګڼه، جمعیت، ازدحام.

**کانګر** (kāngár) جن. کاړ، کانګړ، جغل، شګه، میده تیږه.

**کانګرس** (kāngrís) نر.م. کنګره؛ غونډه، سره راټولېدنه، غونډېدنه، اجلاس، اسامبله، انجمن، میټنګ.

**کانګرو** (kāngarū́) نر.م. کانګورو؛ له کڅوړه لرونکو حیواناتو څخه دی.

**کانګره** (kāngará) ښځ.م. و ګ. کانګرس.

**کانګړ** (kāngáṛ) نر.م.ج. کانکړ، مړاوی، جینګ، زمول، شیته.

**کانګلومرېټ** (kānglomərét) جن. (جیا.) کانګلامریت؛ د رسوبي تیږو یو ډول دی.

**کانګو** (kāngó) ښځ.م. کونګ، کونګی، بوم، جغد، یوه مرغۍ ده چې د ورځې څه نه ویني خو په تیاره کې لیدل کولای شي.

**کانګوړه** (kāngoṛá) ص. ښځ.م.ج. مښتې ژبه، نښتې ژبه، تتله.

**کانګه** (kā́nga) ښځ.م. ۱) خواګرځېدنه، قی، استفراق؛ ۲) کونی، یوه خزنده ده چې د مالو په غوږو او پوستکي کې وي او وینه یې څښښي.

**کانګې** (kāngé) ښځ.م. کانګه، قی، استفراق، ګرځون.

**کانګی** (kāngə́y) ښځ.م. انګازه، ازانګه، د پیریانو غږ، د اواز غبرګون.

**کانون** (kānū́n) نر.م. ۱) اورغالی، اورتون؛ ۲) د قانون مغفن؛ ۳) مرکز؛ ٤) کوره.

**کانه** (kāná) ښځ.م. ۱) بد از مهښت، ناڅاپي پېښه؛ ۲) مصیبت؛ ۳) معامله؛ ٤) دمخ پورتني برخه ۵) د مرغی وزر؛ ٦) وګ. کانا؛ ۷) خوسا؛ ۸) سرکنډی، یو ډول وابښه دی؛ ۹) د عینکو فریم.

**کانه وانه** (kānáwāná) ښځ.م. (ج. کانې وانې) ۱) عجیبه پېښه؛ ۲) آنه بانه، څنګه او ولې، هغه دا.

**کاني** (kāní) ص. نب. معدني، له کان سره تړلی.

**کانی** (kānáy) ښځ.م. ج. ۱) د وښو خاشه، د وښو ډکی؛ ۲) دغوړ سوړه؛ ۳) نل، دورمه، د نی قلم؛ ٤) د اړې سوهان؛ ۵) د چرګ د بڼکې بېخ؛ ٦) د چلم نل؛ ۷) دغشي سر؛ ۸) والی، لښتی؛ ۹) اکانی، د تره د ښځې لقب.

**کانې** (kāné) ف. کوي، لکه: څه کانې؟.

**کاڼ** (kāṇ) نر.م. ۱) د ښهرۍ د ونې په څېر یوه غرنۍ ونه ده؛ ۲) نر.م. ج. وګ. کاړ.

**کاڼا** (kāṇā́) ص. نب. وګ. کانا.

**کاڼاو** (kāṇā́w) نر.ج. کڼا، د پښ (آهنګر) سامان واسباب.

**کاڼه** (kā́ṇa) جن. بډګال، د لوخو ګل.

**کاڼی** (kā́ṇay) نر.م(ج. کاڼي) ۱) وړه غونډه تیږه؛ ۲) د وزن کولو ډبره؛ ۳) د سیند د غاړې ښویه ډبره؛ ٤) قیمتي غمی؛ ۵) ص. نر.م. کاڼا، کانا ٦) کوږ سترګی؛ ۷) په یوه سترګه ړوند.

**کاڼئ** (kāṇáy) ف. کوئ، کړئ، کانئ.

**کاڼي ټک** (kāṇiṭák) ص. نر.م. تیږې ماتوونکی، تیږې ایستونکی، ګټې یا ډبرې ماتوونکی.

**کاڼيز** (kāṇíž) ص. نر.م. کاڼووالا، کاڼیزه؛ ۱) د تیږې، له کاڼي یا ډبرې جوړ؛ ۲) قیمتي غمی؛ ۳) سخت، کلک؛ ٤) مج. سخت زړی، ظالم،

**کاڼي کړپ** (kāṇikráp) نر.م ۱) د سپارکی لوبه، سپرلو، د کوچنیانو لوبه ده؛ ۲) د ژرندې د پل جوړونکی؛ ۳) تړپلونکی، تړ پندی.

**کاڼي کودي** (kāṇikawdí) نر.ج. لوښې کودي، د کاله لوښي، د کور شیان، اثاث البیت.

**کاڼي کوړم** (kāṇikwṛám) نر.م. ۱) بېخي ورک کېدل؛ ۲) کانیګرام.

**کاواک** (kāwā́k) ص. نر.م. ج. کاواکه، بې باک، بې پروا؛ ۱) سست او د لوېدو په حال؛ ۲) تش، ګوګ؛ ۳) بې اختیاره (سړی)؛ ٤) مج. پوچ خولی.

**کاواکي** (kāwākí) ص. نب. ۱) وګ. کاواک؛ ۲) ښځ. م. ج. کاواکوالی؛ ۳) ډډوالی.

**کاواکې** (kāwā́ke) ښځ.ج. اپلتې، پرتې، بې مانا او بې ځایه خبرې.

**کاوبای** (kāwbāy) نر.م. ج. وګ. کوبای.

**کاوچوک** (kāwčū́k) نر.م. د یوې ونې نوم دی.

**کاوچه** (kāwčá) ښځ.م. چپرکټ.

**کاوړ** (kāwáṛ) نر.م. خوشکه، قهر، غوسه، غضب.

**کاوړېدل** (kāwṛedә́l) مص.ل. قهرېدل، عصبي کېدل، په غوسه کېدل.

**کاوه** (kāwá) جن. ۱) قهوه؛ ۲) خوږ شوی شین چای؛ ۳) ښځ.م. د برقي شیانو د لېم کولو یوه برقي آله ده.

**کاوین** (kāwín) نر.م. خوره، د واده د ورځې ډوډی.

**کاه** (kāh) ښځ.م. کا، خاربښت، بخار، ګربدنه.

**کاهبر** (kāhbár) نر.م. لویه ستنه، د غونډې ستنه، هغه ستن چې د بوجۍ او جوالونو خولې پرې ګنډي.

**کاهښته** (kāhištá) ص. نب. ۱) خاربښتي؛ ۲) پمن؛ ۳) مج. بدرنګ.

**کاهښت** (kāhə́ṣt) نر.م. کهښت؛ ۱) سودا، گروم وسواس؛ ۲) خارښت، پم؛ ۳) مج. عبث.

**کاه گل** (kāhgə́l) نر.م. جن. لهو، اخېړ.

**کاهل**[۱] (kāhíl) ص. نر.م. (ج. کاهلان) ۱) لټ، سست، بېکاره؛ ۲) بې حرکته.

**کاهل**[۲] (kāhə́l) مص. ل. ۱) پمن کېدل، پمنېدل؛ ۲) خارښت کول، خارښتېدل.

**کاهله** (kāhalá) ښځ.م (ج. کاهلې) ۱) لټي، تنبلي، سستي؛ ۲) بې حرکتي.

**کاهلي** (kāhılí) ښځ.م. ۱) لټي، سستي، تنبلي؛ ۲) بې حرکتي، بېکاري.

**کاهن** (kāhín) نر.م. ج. ۱) غيب ويونکی، پالبين؛ ۲) د پخوانيو مسيحيانو او يهودو روحاني مشر.

**کاهني** (kāhıní) ښځ.م ۱) غيب وينه، غيب وينگ؛ ۲) د کاهن کسب.

**کاهو** (kāhū́) نر.م. ج. کاوو، يو ډول گټور سابه دي چې اومه خوړل کېږي.

**کاهي** (kāhí) نر.م. کاهی، کايي، کويي، د کلا چاپېره خندک.

**کايل** (kāyıl) نر.م. (بر.) کويل، گوټ، گوټک، هغه سيم چې داستوانې په شکل پېچل شوی وي.

**کاينات** (kāyinā́t) نر.ج. ۱) موجودات، د نړۍ موجودات؛ ۲) نوي پيدا شوي، حادثه؛ ٤) نامحدوده او بې انتها فضا.

**کاينه** (kāyə́na) ښځ.م. قصاص.

**کايي** (kāyí) ص. نب. ژور، عميق.

**کب** (kab) نر.م. ماهي، دسرې وينې لرونکی گروپ هره عضوه چې په اوبو کې اوسي.

**کبا** (kabā́) ښځ.م. د ماما لونگی، هغه پيسې چې د واده په ورځ دزوم له خوا دناوې د ماما د لونگې په نامه ورکول کېږي.

**کباب** (kabā́b) نر.م. وريته، ۱) هغه غوښه چې پر اور يا په انگار يا غوړو کې پخېږي؛ ۲) سوی، وريت، ستي؛ ۳) د چا په مينه کې غرق.

**کبابه** (kabābá) جن. وگ. ډنبری.

**کبابه چيني** (kabābačíni) جن. وگ. «ډنبری» او «کبابه».

**کبابېدل** (kabābedə́l) مص. ل. ۱) غوښه په اور، انگار يا غوړو کې وريتېدل؛ ۲) تر بې رحمه کلک انتقاد لاندې راتلل؛ ۵) مج. د مينې په اور سوځېدل.

**کبار**[۱] (kubā́r) ص. نر.م.ج. ستر، لوی، غټ.

**کبار**[۲] (kibā́r) نر.ج. د کبير جمع.

**کباړ** (kabā́ṛ) نر.م. ۱) ليلام؛ ۲) پرزې، د موټرونو او نورو شيانو زاړه سامانونه او پرزې.

**کباړي** (kabāṛí) ص. نب. ۱) په کباړ اړوند؛ ۲) ليلامي؛ ۳) فا. نر.م. کباړ پلورونکی.

**کباړی** (kabāṛə́y) ښځ.م. چينه، چپن.

**کبډي** (kabáḍi) ښځ.م. (ج. کبډۍ) (لو.) کوډي، کوډيکت، کت کبډي، يوه لوبه ده.

**کبر** (kíbar) نر.م. ۱) لويي، غرور، تکبر؛ ۲) ځان غوښتنه؛ ۳) ناشکري؛ ٤) مج. تباهي، بربادي؛ ۵) لويوالی، سپين ږيرتيا، بوډاتوب.

**کبرا** (kubrā́) ص. ښځ.م.ج. کبرى ۱) د اکبر مؤنث، لا لوی؛ ۲) من. لويه قضيه، دوهمه قضيه.

**کبرجن** (kibarján) ص. نر.م.ج. خانتما، ۱) کبر کوونکی، لوی چړی، متکبر، مغرور؛ ۲) مج. ناشکره.

**کبرڅڼ** (kabərcə́ṇ) نر.م. يو ډول برگ ځنگلي مرغه دی، منبو که يې اوږده ده.

**کبرداغ** (kabərdā́ğ) نر.م. ډېره غوښنه چې دځو ورځو لپاره په يوه ځل قورمه شي.

**کبرغان** (kabərɣán) نر.م. ۱) کبرغی، تر مولږک لوی، تور ژیړ ته مایل څرنی حیوان دی؛ ۲) حن. یو ډول سابه دي.

**کبرغی** (kabərɣáy) نر.م. و گ. کبرغان ۱).

**کبریا** (kıbriyá) ښځ.م. ۱) لوی واله، عظمت، لویي؛ ۲) غرور، تکبر؛ ۳) د خدای (ج) یو نوم.

**کبړ** (kabáṛ) نر.م. کبړ، کلک پړی چې اس پرې تړي.

**کبل** (kabál) نر.م. ج. ۱) د چمن واښه؛ ۲) کبلي، مشهور واښه دی.

**کبله** (kabála) اد. کبله، له امله، په سببه.

**کبلی** (kabláy) نر.م ۱) دهوسی بچی؛ ۲) د ماشومانو یو ډول ناروغي ده.

**کبلی پاڼه** (kabláypāṇa) ښځ.م. یو ډول واښه دی چې د پسرلي په پای کې راشنه کېږي.

**کب نیوونی** (kabniwúnay) فا.نر.م. کب نیوونکی، څوک چې کبان نیسي.

**کب نیونه** (kabniwana) ښځ.م. کب نیوی، ماهی نیونه.

**کبودچه** (kabūdčá) ښځ.م. کبوچه، د کرکولی (قره قولی) یو ډول شین پوستکی.

**کبوړه** (kabóṛa) ښځ.م. ۱) شیره، نری حلوا؛ ۲) لیتی، کاچي، ړوز

**کبوړی**[1] (kabúṛay) نر.م(ج. کبوړي) ۱) کوچنی کب، وړوکی ماهي؛ ۲) مج. د بدن ماهیچه.

**کبوړی**[2] (kaboṛáy) نر.م. د گوړي ژاوله، د گوړې جاوله.

**کبول** (kaból) نر.م. سوغات، تحفه.

**کبي** (kabí) ښځ.م. ۱) اخور؛ ۲) ترسبری، ترسری، د آس ترسبری.

**کبیر** (kabír) ص. نر.م. ج. ۱) لوی، ستر، غټ؛ ۲) ښوره څمکه؛ ۳) مو. د ښځو د شرمولو لپاره بدې بدلي؛ ٤) عر. د شعر یو بحر دی.

**کبیره** (kabirá) ص. ښځ. م. ج. ۱) د کبیر مؤنث؛ ۲) ستره؛ ۳) ښځ.م. د څرمنې یا کاغذ مېچ شوې ټوټه چې موچیان د هغې په اندازه چاټه پنې یا څپلی یا بوټونه جوړوي.

**کبیسه** (kabisá) ص. نب. نر. ښځ.م. هغه کال چې ۳٦٦ ورځې وي، دا ډول کال په هرو څلور کلو کې یوه پلا راځي.

**کپ**[1] (kap) نر.م. ۱) لړزه، رېږدېدا؛ ۲) نوری، مړی؛ ۳) د پنې د منځ تلی؛ ٤) کپه، تلی، یوه خوله، یوه کپه میده پوډر.

**کپ**[2] (kup) ص. نر.م. و گ. کوپ.

**کپتان** (kiptán ص. نر.م. کپتن ۱) کفتان، د یوې ډلې یا په ټولگي کې مشر؛ ۲) عس. تورن، د لوموړی بریدمن او جگتورن ترمنځ رتبه.

**کپټلیزم** (kapiṭalizam) نر.م. و گ. پانگوالي.

**کپر** (kapár) ص. نر.م. ۱) لوړه ژوره، ناهواره؛ ۲) نر.م. کاپر، مس؛ ۲) کپره، کپری، ککره.

**کپرک** (kaparák) نر.م. ۱) لوړه ژوره، ښکته پورته، غوچاړي غوچاړي سرک؛ ۲) د اوبو په سرناز ک کنگل؛ ۲) خړه، هغه ختنه چې تر باران یا سېلاب وروسته پر ځمکه وچه شي.

**کپرلی** (kapəraláy) نر.م. یو ډول غونډ بوټی دی، سره اغزي لري.

**کپرمزی** (kaparmázay) نر.م. کاپرمزی، و گ. زنار.

**کپره**[1] (kapará) ښځ.م. کپری، ککری، کوپړی.

**کپره**[2] (kaprá) ښځ.م. یو ډول ټوکر دی چې کتابونو ته د پوښ په ډول ورکول کېږي.

**کپری** (kaparáy) ښځ.م. و گ. کپره (۱).

**کپریل** (kapríl) نر.م. د کاشیو جوړولو کارخونه.

کپړ (kapáṛ) نـر.م. ۱) د آس د تـرلـو اوږد پـړی؛ ۲)نر.ج. لوښې، اسباب؛ ۳)نر.م. بوټی، شله بټی، سرخې غوښه؛ ٤)د ټوکر او ځینو نورو شیانو ټوټه یا پارچه؛ ۵)دسڅي دخواړه لوښی؛ ٦)د کمند مضبوط پـړی؛ ۷) مـات خـاورین لوښی.

کپړکی (kapaṛkáy) نر.م. کېږدی، خیمه، خرګاه.

کپړه (kapṛá) ښځ.م. کپړا، ۱) ټوکر، رخت، تکه؛ ۲) کالي، جامه، لباس.

کپړی (kapṛáy) نر.م. کنډول، د خـاورین لـوښـې پارچه چې کار ځنې اخیستل کېدای شي.

کپړۍ[1] (kapṛə́y) ښځ.م. ۱) غبېږ، غبېړه، کشتي، پالواني؛ ۲)د ټوپک د دارو دبه یالوښی.

کپړی[2] (kapəṛáy) نـر.م. (ج. کپوړي) کـبـوړی، غړی، د بدن ماهیچه.

کپړيي (kapṛayí) ص. نب.نر.ښځ. م.ج. له کپړې جوړ: ۱)د ټوکر، د رخت؛ ۲) د کپړې.

کپس (kapás) نر.م. و.ګ. قفس، پنجره.

کپسول (K(i,a)psól) نر.م. ۱) کوشکوړی، داسې شی چې منځ یې تش وي؛ ۲)یو کـوچنی، د حل کېدو وړ، جلاټیني محفظه چې یو ډوز درمل په کې قید وي.

کپ کپ (kápkap) ق. ټوټـه ټوټـه، پارچه پارچه.

کپله (kapála) ښځ.م. ۱) خمڅه، نـوړی، مـړی، نواله، ګوله، یوه مړی ډوډی؛ ۲) کپه.

کپن (kapán) نر.م. کفن، د مړي سپینه جامه.

کپن کښ (kapankáṣ) ص.نـر.م.ج. کفن کـش: ۱) نباش، له مړي څخه کفن کښونکی؛ ۲) مج. محتکر، ګران پلورونکی؛ ۳) مج. غل.

کپنول (kapanawə́l) مص. مـت. کـفـنول، کـفن وراغوستل، مړي ته کفن ورکول.

کپنۍ (kapanə́y) ښځ.م. ۱) بـادام، د بـادام ونـه؛ ۲) ورېښتی؛ ۳) ګبنۍ نیول، لړیکی.

کپه (kapá) ښځ.م. ۱)و.ګ. کپله؛ ۲)میـده ګې یا پوډر دوله شی یا میده درمل چې د یوه خـوراک په اندازه وي یا په یوه پلا خولې ته اچول کېږي؛ ۳) دمېوه خرڅوونکي څپره؛ ٤)توره کېږدۍ.

کپی (kapáy) نـر.م. کتبوزی، د اوښ کټ پوزی، د اوښ کتپیزی چې له مزري څخه جوړېږي.

کپۍ (kapə́y) ښـځ.م. ۱) پنه، مـوچنه؛ ۲)دپښو کولو ابتدایي پیزار؛ ۳)وړوکی ژی.

کپی خولی[1] (kapáyxúlay) ص. نـر.م. کوپ خولی، څوک چې چیته خوله لري.

کپی خولی[2] (kapáyxwə́lay) نر.م. ص. لستوڼ خوله، د لستوڼو یو ډول ښایستې خولې دي چې په وربښمو او زرتارو سره جوړېږي.

کپېدل (kapedə́l) مص.ل. رپېدل، تربدل، رېږدېدل.

کپېړ (kapéṛ) نر.م. نهنګ، ناکه.

کت[1] (kat) نر.م ۱)کورنی دوا ده چې دخوله خوږي په وخت کې یې په خوله کې اچوي؛ ۲)ص. نر. م. کاټ، قت، قـات، قط؛ ۳)راټول، راغونډ؛ ٤)رامات.

کت[2] (kut) نر.م ۱)کت، غونچې، ګونځې، ګونجه ۲)تخرګ، ترخ.

کتاب (kitáb) نر.م(ج. کتابونه) لیکی؛ ۱)چاپي یاخطي جونګ، مجلد شوې پاڼې؛ ۲)اندراج.

کتاب پلورنځی (kitābploranjáy) ښځ.م. د کتابونو خرڅلو ځای یا دکان.

کتابت (kitābát) نـر.م. ۱) لیـک، لیکل، لیکنه؛ ۲)لیکوالي؛ ۳)لیکنه؛ ٤)کاتبي.

کتابتون (kitabatun) نر.م. کتابخونه، کتابخانه، کتبخانه.

**کتابچه** (kitābčá) ښځ.م ۱) د سپینو پاڼو مجموعه ۲) کتاب ګوټی، کوچنی کتاب.

**کتابخونه** (kitābxūná) ښځ. م. کتابتون؛ ۱) د کتابونو د مطالعې خونه؛ ۲) د کتابونو د ساتنې او ذخیرې خونه.

**کتاب خرڅوونکی** (kitābxarčawū́nkay) نر.م. کتاب پلورونکی، څوک چې کتابونه خرڅوي.

**کتابدار** (kitābdā́r) نر.م. ۱) د کتابتون متصدي؛ ۲) په چا پسې چې د کتابتون کتابونه قید وي.

**کتابښود** (kitabsod) لیکي ښود، لیکي پوهه.

**کتاب ګوټی** (kitā́bgótay) نر.م کمکی کتاب، وروکی کتاب، ورکوټی کتاب.

**کتابه** (kitābá) ښځ.م. ۱) هغه خط چې په جلي قلم پر کاغذ یا نازک توکر لیکل کېږي؛ ۲) د قرآن کریم آیت چې د توغ یا بیرغ پر مخ لیکل کېږي.

**کتابي** (kitā́bi) ص. نب. ۱) د کتاب، په کتاب اړوند؛ ۲) نر. ښځ.م. مؤثقه او مستنده خبره؛ ۳) ص. نب (مج.) پرنظري او ذهني خوا ولاړ.

**کتار** (katā́r) نر.م. (ج. کتارونه) قطار، ۱) لیکه، لړۍ، څېره، لیک، چیل، لین؛ ۲) ردیف، صف؛ ۳) سلسله؛ ٤) لو. قطاریز، یو ډول لوبه ده.

**کتاربندي** (katārbandí) ښځ.م. کتار ترنه، کتار ترنګ، کتارول، په کتار تبدیلول.

**کتار وزمه** (katā́rwazmá) ښځ.م. کتار وزمه، قطار وزنه، غاړکۍ ته ورته، ګردنۍ ته ورته.

**کتاري** (katā́ri) ص. نب. د کتار، په کتار اړوند.

**کتان** (katā́n) نر.م. ۱) سوند، سند، کنف، یو بوټی دی چې لاجوردي ګل کوي؛ ۲) هغه توکر چې ددې بوټي له لښتو څخه جوړېږي کتان نومېږي.

**کتب** (katáb) نر.م. ج. ۱) دوه ښاخیزه لرګی؛ ۲) د اوبن د کټې مخکنی لرګی؛ ۳) رخه، غبطه.

**کتبوزی** (katbózay) نر.م. کتپېزی، کتپ بوز، کپی، کتبېزی، پوزګی، پوزبند.

**کتبي** (katbí) ص. نب. نر. ښځ.م. ج. تحریري، لیکلي.

**کتپېز** (kutpéz) نر.م. چیمبرک، آسمان څکالکی آسمان چکالی، ښاپېرک، چرمي ښاپېرک.

**کترک** (katarák) نر.م. کوم کلالي لوبښي دی.

**کتره** (katrá) ښځ.م. ۱) د غوښې یا ډوډۍ پارچه؛ ۲) پېغور، کنایه؛ ۳) قطره؛ ٤) مج. ذره.

**کتره کتره** (katrákatrá) ق. ۱) توټه توټه، پارچه پارچه؛ ۲) قطره قطره، څاڅکی څاڅکی.

**کتري** (katrí) ص. نب. ۱) زر زری؛ ۲) کرکجن؛ ۳) سخت، سوګت.

**کترۍ** (katráy) ص. نر.م. بوچې پسه، سونګی، هغه پسه چې غوږونه یې واړه او سونګي وي.

**کترې باران** (katrebārā́n) نر.م. د ښځو یو ډول پسول دی.

**کترینک** (katrinák) نر.م. ۱) روی کوچنی؛ هوښیار او څیرک کوچنی؛ ۲) لوېشتینک.

**کتغ** (katáǧ) نر.م. کوناغ، نګولی، لمدبل، ترکاري.

**کتغلی** (katǧaláy) نر.م. هغه لمڅی یا پوست شی چې د غوایي د غل لاندې اچول کېږي.

**کتک** (katák) نر.م. ۱) هغه څمکه چې ښه غنم په کې کېږي؛ ۲) تر «آسو» وروسته میاشت.

**کت کت** (katkát) صوت. نر.ج. ۱) د چرګو کوټ کوټ، کټکټ؛ ۲) ص. نر.م. ۱) کات کات، قات قات؛ ۲) راټول، رامات.

**کتکتی** (katkátay) نر.م. ۱) اونت، کادرۍ، لرۍ، زرخانۍ؛ ۲) کټکټی، پر له پسې خندا.

**کتل** (katə́l) مص. ل. ۱) لیدل، کتل؛ ۲) مص. مت. لټول، ۳) مج. مطالعه کول.

**کتلاک** (kıtlā́k) نر.م. فهرست، یو بشپړ لېست په تېره بیا هغه کاروونه چې د الفبې په اساس اوډل شوي وي.

**کتلمات** (katalmā́t) نر.م. جنګ جګړه بندېدنه.

**کتله**[1] (kū́tla) نر.م. ۱) دغره کمر؛ ۲) پاڼ، پانډ.

**کتله**[2] (kıtlā́) ښځ. ۱) مـاده، جسـم، بـدنه، غټی، غونډاري، کوټه، جرم؛ ۲) نفوس، جامعه.

**کتلوي** (kıtlawī́) کتله یي، په کتلې اړوند، د کتلې په کتله مربوط، جمعي، غونډ.

**کتلی**[1] (katə́lay) مف.نر.م ۱) لېدلی؛ ۲) لټولی؛ ۳) مطالعه کړی.

**کتلی**[2] (katláy) نر.م. شمشتی، کبشپ، شکرتتي، کاتلی، کاسه ګرب.

**کتمخی** (katmə́xay) نر.م. د کتې په مخ کلک توکر یا د مزري له پاڼو څخه جوړ شوی شی.

**کتمیره** (katmirā́) ښځ.م. یو ډول نقش دی چې په تغرکې له سرې ځنې اوبدل کېږي.

**کتنځی** (katanjā́y) نر.م. د معاینې ځای، د کتنې ځای، معاینه خونه.

**کتنه** (katā́na) ښځ.م. ۱) لیدنه، ۲) معاینه؛ ۳) پال لیدنه؛ ٤) مطالعه، ملاحظه.

**کتنه لیدنه** (katā́nalidā́na) ښځ.م. لیدنه کتنه، ملاقات، لیدنګ.

**کتو** (katū́) (ج. کتوان) یو مرغه دی.

**کتول** (katawə́l) مص. نب. قـاتول: ۱) غبرګول؛ ۲) راټولول، راغونډول؛ ۳) په سور قطع کـول؛ ٤) ماتول.

**کتون** (katū́n) نر.م. ۱) کتنه؛ ۲) لټونه؛ ۳) لیدنه؛ ٤) ملاقات؛ ٥) مطالعه، ملاحظه.

**کتونوال** (katūnwā́l) نر.م.ج. کتونکی، مشاهد، لوی پلټونکی.

**کته** (káta) ښځ.م. (ج. کتې) ۱) یوه وسیله ده چې د خـره، کـچـر، اوښ لپاره له کلکو توکرانو څخه جـوړ او ددوی پـر ملا یې ږدي؛ ۲) ق. و ګ. کښته.

**کتی** (katáy) نر.م. ۱) کتی، د شپږو د پیمانې کولو لرګی؛ ۲) سره ګـوروبه، ګـوروبه، معلومه به شي؛ ۱) اخطاریه کلیمه ده - کتی به شي.

**کتیبه** (katibá) ښځ.م. ۱) لیکنه، لیک؛ ۲) ډبر لیک؛ ۳) لښکر، پوځ، فوځ.

**کتې پتې** (kátepaté) ښځ.ج. اپلتې، اپلاتې، کتې، پتې، بې مانا او بې ځایه خبرې.

**کتېدل** (katedā́l) مص. ل. قـاتېدل، کـاتېدل: ۱) غبرګېدل؛ ۲) راغـونډېدل؛ ۳) مـاتېدل؛ ٤) کتارې کول؛ ٥) غلی غلی خندېدل.

**کتیر** (katír) جن. د پلوڅې کنډ، د پلوسې چېر.

**کتیره** (katíra) جن. کتیرا، د پلوڅې (ګون) نومې اغزنې ونې کنډ دی.

**کټ** (káṭ) نر.م. (ج. کټونه) ۱) چارپایی؛ ۲) یو ډول رنګ دی، دځرمنو په رنګولو کې یې استعمالوي؛ ۳) قـهقـهـه؛ ٤) راګـرځـونه، مخ یې را اړونه؛ ٥) مستیاره، درمنه، شیخ ارمني، قسطوس؛ ٦) ص. غټ، کټه؛ ۷) نر.م. د فلم دوې ټوټې چې سره وصل شي او نتیجه ترې ترلاسه شي.

**کټا** (kaṭā́) ښځ.م. په کټ کټ خندا.

**کټاب** (kaṭā́b) نر.م. کټاو، یو ډول ګنډون دی.

**کټار** (kaṭā́r) نر.م ۱) (لو.) چیتی، چغی، چندری، چندولی، جزبازي؛ ۲) ص.نر.م. سرزوری او سـر کښه حیـوان؛ ۳) نـر.م. و ګ. کټار(۱۵)؛ ٤) نر.م. ج. کټر، کتور، تر اسلام راورو د مخه د نورستان یوه قبیله چې د کونړ د وټه پور په کټار نومې ځای کې مېشته وه؛ ۲) مج. سخت زړی.

**کټاره** (kaṭārá) ښځ.م. ۱) کټارۍ، کټار، کوتخاره، خنجر، ترتورې وړه منحني شکله جارحه آله ده؛ ۲) ص. ښځ.م. ۱) لوغسی، هغه غوا چې لغتې وهي او خپل بچي ته شیدې نه ورکوي؛ ۳) مج. بې شفقته (ښځه)؛ ٤) ښځ. م. د بام، برنډې، جگ انگړ... ژوبو ته د لرگیو، سیخونو پنجره.

**کټارېدل** (kaṭāredә́l) مص.ل ۱) سرکښته کېدل؛ ۲) په قهرېدل؛ ۳) مج. بې رحمه کېدل؛ ٤) دغوا یا مېښې سرکښه کېدل.

**کټالۍ** (kaṭāláy) ښځ.م. کوټالۍ، کوټلۍ، کوټول، هغه کوټولۍ چې زر په کې ویلې کېږي.

**کټاو** (kaṭā́w) نر.م. و گ. کټاب.

**کټ باڼ** (kaṭbā́ṇ) ص.نر.م. څوک چې کټ پېړي.

**کټ بوڼ** (kaṭbū́ṇ) نر.م. بوڼ، د مزرو د پانو پړی، د مزري پړی چې کټ پرې اوبدل کېږي.

**کټ پړی** (kaṭpā́ṛay) نر.م. پیاړمه هغه پړی چې د کټ د لنگې او پیاړمې کار ترې اخیستل کېږي.

**کټپوز** (kaṭpū́z) نر.م. کټبوزی، کټپزی، کټمزی، پوزکی، کټبیزی، دخولې کوری.

**کټ پوښ** (kaṭpoṣ) نر.م. کټ څادر، روجایي.

**کټرکی** (kuṭarkáy) نر.م. و گ. کوټرکی.

**کټ کټ** (kaṭkaṭ) نر.م. ۱) کټ کټی، کټهکي، قاقا، کرس کرس، قهقهه.

**کټ کول** (kaṭkawә́l) مص. مت. ۱) پرې کول، قطع کول؛ ۲) کاټ کول، مخه راگرځول.

**کټکی** (kaṭkáy) نر.م. ۱) کوچنی کټ، وړه چوکۍ ده. له بوڼ څخه اوبدل کېږي؛ ۲) چوکۍ.

**کټ کېدل** (kaṭkedә́l) مص. ل. ۱) پرې کېدل، بندېدل؛ ۲) کاټېدل، مخه یې راگرځېدل.

**کټگی** (kaṭgáy) نر.م. ۱) کوچنی کټ؛ ۲) یو بوټی دی چې اوږدې پاڼې او لنډه ډنډر لري.

**کټل**(۱) (kuṭә́l) مص. مت. شړل، چرگان کټې کول.

**کټل**(۲) (kaṭә́l) نر.م. یوه میوه لرونکې ونه ده.

**کټلېمه** (kaṭlemá) نر.م. بیټلی، د مرغیو د نیولو لرگین دام.

**کټماله** (kaṭmālá) ښځ.م. دسرو زرو یا سپینو زرو گانه چې دسینې د پاسه اچول کېږي.

**کټ مټ** (kā́ṭmáṭ) ق. هوبهو، عیناً، بېخي ورته، یو رنگ، یو ډول.

**کټمل** (kaṭmál) نر.م.ج. منگوره، خسک، کونک.

**کټمیر** (kaṭmír) نر.م. (ق. ک) دلی، ټوپه، توپی، د روژې او اخترو د اعلانولو لپاره په غرو کې وچو خاشاکو ته اور وراچوي چې د هغو د لمبو په لیدو سره ولس پوهېږي چې سبا روژه ده یا اختر.

**کټمېره** (kaṭmerá) ښځ.م. کوته خره، ساتول، لویه چاړه یا چاکو.

**کټمېری**(۱) (kaṭmeráy) نر.م. ۱) د کوترې بچی؛ ۲) پاختکه، فاختکه؛ ۳) قمری.

**کټمېری**(۲) (kaṭaméray) ص.نر.م. کټه مهری، بې مینې، بې علاقې.

**کټو** (kaṭáw) ښځ.م. ۱) کټوه، کټوی، خاورین دېگی؛ ۲) و گ. ښوروا.

**کټ وټ** (kaṭwā́ṭ) ص.نر.م. ۱) گډوډ؛ ۲) خالص، پاک پاکه، ټول ټال؛ ۳) پاته؛ ٤) ادلون بدلون.

**کټوټکی** (kaṭótkay) نر.م. د کوچنیانو یو ډول زانگو ده.

**کټوخه** (kaṭúxa) ښځ. م. پټاکی، پټاقی.

**کټور** (kaṭū́r) ص. نر.م. د ښځې په خبوله، د ښځې مرید، د ښځې تابع.

**کټوری** (kaṭoráy) نر.م. جام، د اوبو څښلو فلزي لوی لوښی.

**کټور** (kaṭwár) ص. نر. م. ج. د پرمایښت، د فرمایش له غوښتنې سره برابر.

**کټوښی** (kaṭóṣay) نر. م. د ختین نغري پښه.

**کټوګرځول** (kaṭawgarǰawal) مص. مت (پ. ک.) په لویو قومي پېښو کې چې مرکه جوړېږي، نو د مرکه چیانو د خلعت لپاره چې پیسې راټولېږي کټوګرځول یې بولي.

**کټول** (kaṭawál) مص. مت ۱) خوځول، سالرونکو ته حرکت ورکول؛ ۲) مج. راپارول؛ ۳) غالبوزې تورول؛ ٤) پرې کول، بندول؛ ٥) کاټ کول، راټاوول، مخ یې راګرځول.

**کټوله** (kaṭolá) ښځ. م. ډولۍ، د ناوې جوپان، یوه وسیله ده چې ناوې د پلار له کورڅخه د مېړه کور ته پکې وړي.

**کټوه** (kaṭáwa) ښځ. م. ۱) و.ګ. کټو؛ ۲) و.ګ. شمله.

**کټوی** (kaṭwáy) ښځ. م. ۱) و.ګ. کټو ۱؛ ۲) کټغ، ننګولی.

**کټوی څټ** (kaṭwaycát) ص. نر. م. ۱) څوک چې کټوې او دېګونه څټي؛ ۲) تالي څټی.

**کټه** (kaṭá) ص. نب. ۱) غټ، غټه، قوي، پیاوړی؛ ۲) نر. م. غټ باز، جره باز.

**کټهار** (kaṭahā́r) نر. م. ۱) د زرکو ربز، چکره؛ ۲) خندا، قهقهه، په کرس کرس خندا.

**کټه باز** (kaṭabā́z) ص. نر. م. ج. ۱) غټ قمار باز، ستر جوارګر؛ ۲) ګاشواز، کلانکار.

**کټه پیش** (kaṭapiš) نر. م. کرپش، کوټرک، لوړکی، د شهادت ګوتې په واسطه څوک په تندي وهل.

**کټه چرګه** (kúṭačarga) ښځ. م. کرکه چرګه، کوړکه چرګه.

**کټه ګوته** (káṭagóta) ښځ. م. ګټه ګوته، غټه ګوته، لویه ګوته، بټه ګوته.

**کټه ګوري** (kaṭagōri) ښځ. م. (ج. کټه ګوري) ډله ډله کول، درجه په ګوته کول؛ ۱) دسته، طبقه، ډله؛ ۲) وېش، هغه وېش چې په تصنیف کې استعمالېږي.

**کټهل** (kathál) نر. م. کټل.

**کټه مهر** (kaṭamíhar) ص. نر. م. و ګ. کټمېری.

**کټه مېری** (kaṭaméray) و ګ. کټمیری.

**کټی** (kaṭáy) نر. م. ۱) د مېښې نر بچی، جېټکی؛ ۲) کټی، د شپږو اندازه کولو لرګی؛ ۳) د مېوو، نسکو، شړشمو، شاخلو او مشنګو وابنه.

**کټۍ** (kaṭə́y) ښځ. م. ۱) کټو، کټوی؛ ۲) نګولی پخونه.

**کټې** (kāṭe) صوت. ښځ. م. د غوا او د مېښې د بچي د شړلو اواز.

**کټېدل** (kaṭedál) مص. ل ۱) حرکت کول، خوځېدل ۲) راپارېدل، قهرېدل؛ ۳) قطع کېدل؛ ۲) مخ راګرځېدل، کاټېدل، راټاوېدل.

**کټېر** (katér) نر. م. پګړه، اشر، بلندره، بې اجورې ډله ییز کار.

**کټېرۍ** (kaṭeráy) ښځ. م. کټیری، ارکاره، کوړڅو، لاغو، کرچی، اتیری، کریڅو.

**کټیک** (katík) فا. نر. م. کټیکی، دباغ، څرمن پخوونکی.

**کټی وهل** (kaṭaywahál) مص. مت. کله چې پردې مېږې او بزې کومې شپنې کورنۍ له ځانه سره غره ته بوځي، هلته دوهمه، دریمه ورځ د هغو شیدې په یوه لوښي کې اندازه کوي چې د کټې وهل ورته وایي.

**کټېیل** (kaṭeyál) مص. مت. ۱) سکولل، په بیاتې سره د ونو ځانګې یا وابنه پرې کول؛ ۲) د سر وېښتان بې ترتیبه خرېیل (کورپه کول).

**کثافت** (kasāfát) نر.م (ج. کثافتونه) ۱) پرېړېدنه، پنډېدنه؛ ۲) گڼېدنه؛ ۳) گاټه کېدنه، غلظت، ټینگوالی؛ ٤) خچنتیا، ناولتیا، چټلي.

**کثرت** (kasrát) نر.م. ډېرېدنه، ډېربښت، ډېروالی، زیاتېدنه.

**کثیر** (kasír) ص. نر.م. ج. ډېر، زیات، ډېر زیات، پرېمانه، زښت ډېر، د قلیل ضد.

**کثیرالاضلاع** (kasriulazlā́) نر. ښځ. م. ج. (هن.) څو ضلعي، پولیگون؛ هغه سطحه چې د څو خطو په وسیله محدوده شوې وي.

**کثیف** (kasíf) ص. نر.م. ج. ۱) پېړ، پرېړ، پنډ، ضخیم؛ ۲) گڼ؛ ۳) گاټه، ټینگ؛ ٤) خچن، مردار، چټل؛ ۵) دروند.

**کج** (kaj) نر.م. د ترکانۍ یوه آله ده چې دنبناني کولو لپاره کارېږي.

**کجاوه** (kajāwá) ښځ.م. ۱) کواره، له لښتو څخه جوړه شوې اوږده ژوره ټوکرۍ؛ ۲) و گ. کټوله.

**کجاوې** (kujāwe) ښځ.ج. اپلاکې، اپلتې، چټیاټ، بې مانا خبرې.

**کجایي** (kujāyí) فا. ص. نب. نر. ښځ. م. بکواسي، بډله ویونکی.

**کجبېری** (kajberáy) نر.م. پرهار پانی، گزک پانه، د ورې د ژبې په څېر یو ډول نبات دی.

**کجک** (kaják) نر.م. ۱) کجکی، د ښځې د تندي وېښتان چې د بادام په څېر یې جوړ کړي وي؛ ۲) پسینه بادرنگ؛ ۳) منحني لرگی چې د ژرندې پل په کې څرخي.

**کجکل** (kajkál) ص. نر.م. ج ۱) گوزنې، گوزني، گوزن وهلی، فلج شوی؛ ۲) کجی.

**کجکی** (kajakáy) نر.م. ۱) کرغښی، د ژامې وروستنی هډوکی؛ ۲) سروبی، کوچنی حوض.

**کجگل** (kajgwə́l) نر.م. یو تور گل دی.

**کجل** (kajál) جن. ۱) رانجه چې کوچ ورسره گډ شوې وي؛ ۲) د ډیوې لوی (تورگنی، تورکی، لوگی) چې په رانجو کې گډ شوې وي.

**کجلې سترگې** (kajálestərge) ښځ.ج. ښایستې سترگې، ښکلې سترگې، رانجه کړې سترگې.

**کجن** (kaján) نر.م. تلتک، برستن.

**کجور** (kajū́r) نر.م. ج. ۱) و گ. خجور ۲)؛ ۲) یو ډول جوار دي.

**کجوره** (kajū́ra) ښځ.م. ۱) خرما، د خرما د ونې یو ډول؛ ۲) د کجورې د ونې میوه.

**کجه** (kajá) ص. نب. پنځه کلنه غوا یا غویی.

**کجی** (kajáy) ص. نر.م. ۱) رخ، کچل، هغه حیوان یا انسان چې پښې یې کږې وږې وي؛ ۲) مج. مخل، خج اچوونکی؛ ۳) جنغوزی، څنغوزی.

**کجۍ** (kajə́y) ښځ.م. د ییوې د تیر هغه برخه چې په کونده کې وي.

**کجیر** (kajír) نر.م. قجیر؛ ۱) کرگس، یو لوی مرغه دی؛ ۲) څېلې، برغتی، غټه دانه ده چې د غاړې یا تخرگ لاندې پیدا کېږي؛ ۳) ص. نر. م. (مج.) دنگ، لوړ، جگ.

**کجین** (kajín) نر.م. د برستن د گنډلو یو ډول تار.

**کچ**(۱) (kač) نر.م. (ج. کچونه) ۱) اندازه، مېچ؛ ۲) پیمانه؛ ۳) یو لوی بوټی دی؛ ٤) سخته ځمکه، چې کرونده او کښت پښه نه رازرغونوي.

**کچ**(۲) (kač) ص. نر.م. کوچنی، ووړ، وړوکی.

**کچاری** (kačáray) ښځ.م. موسسه، اداره، محکمه، د محلي حاکمانو د دربار ځای.

**کچاړی** (kačāṛay) ښځ.م. و گ. کچاری.

**کچ اغزی** (kačağzáy) نر.م. یو ډول ازغن بوټی دی.

**کچالو** (kačālū́) نـر.م. ج. (ج. کچالـوان) پتاتـه، پتاتې، کچالان، الو، الوګان.

**کچر** (kačár) نر.م. کچره، قچر، قـچره، باروړونکی حیوان دی.

**کچره**(۱) (kačará) ښځ.م. ۱) وګ. کچر؛ ۲) ص. ښځ.م. (مج.) مسته او بداخلاقـه ښځه.

**کچره**(۲) (kačrá) ص. نب. ګډوډ، مخلوط.

**کچري** (kıčrí) نر.م. جن. وګ. کچړی.

**کچری** (kačaráy) ښځ.م ۱) اوم ختکی؛ ۲) کجاری هـغـه ځـای چې دعـوه پـه کې فیصله کـېـږي؛ ۳) توکې، ملنډې، مسخرې.

**کچرې** (kačáre) ښځ.ج. ۱) توری، توری پیسې؛ ۲) ښځ.م. چیکړ، چکړ، چقړې؛ ۳) د زرکې او چرګې اوازونه.

**کچړی** (kıčŕáy) نـر.م. جن. (یخ.) بتـه، کـچـري، کچری، د کورتو اوګره؛ یو ډول خواړه دی.

**کچکاسه** (kačkāsá) ښځ.م. لویه ځمځی ده چې د ګنې شربت له یوه لوښي ځخه بل لوښي ته پرې اچوي.

**کچکاله** (kačkālá) نر.م. مات شوی لوی خاورین لوښی.

**کچ کچول** (kačkačū́l) نر.ج. د کور مستعمل لوښی.

**کچکول** (kačkól) نر.م (ج. کچکولونه) د ملنګانو اودرویشانو دخیر ټولولو بیضوي شکله لوښی.

**کچکولک** (kačkolák) نر.م. کرچل، کچکوله، د پستې، بادامو او نورو میوو پوستکی.

**کچګر** (kačgár) ص.نر.م.ج. کچ کوونکی، اندازه اخستونکی، میچ کوونکی.

**کچل** (kačál) ص. نر.م.ج. ۱) لکوک، ایږیر، هغه حیوان چې دتګ په وخت کې پښې سره منبلې؛ ۲) دکږو پښو خاوند (انسان).

**کچماچو** (kačmāčū) نر.م. انګور توره، ګیدړ کور، کرماچو، عنب ثعلب، سنګ آنګورک.

**کچنوټی** (kočnōṭay) ص. نر.م. کوچنوټی.

**کچنی** (kačnáy) ص. ښځ.م.ج. کنجری، بدکاره ښځه، بداخلاقه ښځه، کنچنی.

**کچوالی** (kačwālay) نـر.م. ۱) اندازه، میچ، میچ اخیستنه؛ ۲) دځمکې سختوالی.

**کچوت** (kačū́t) نر.م.ج ۱) بخیل، شوم، کنجوس؛ ۲) پست، کچه، ضعیف النفس.

**کچوټی** (kačóṭay) ص.نر.م. کوچنوټی، کمکی، ورکوټی، د کچ مصغر.

**کچول**(۱) (kačawál) مص.مت. کچ کول، میچول، میچ کول، اندازه کول.

**کچول**(۲) (kəčól) نر.م. کړوپ لوښی، چینت شوی لوښی، چینت ظرف.

**کچوله** (kačolá) جن. کوچلـه، ازاراقي، قـاتـل الکلب؛ د «وومیکیه» ونې تخم دی، میوه یې د نارنج په اندازه او ۱۲-۱۵ دانې تخمونه لري. رنګ یې خړ او مغز یې سپین و تریخ دی.

**کچ ولوی** (káčolóy) نر.ج. لوی واړه، واړه زاړه.

**کچ ومیچ** (kačoméč) نـر.م. اندازه او مقدار، مقدار و اندازه، قدو قامت.

**کچونه** (kačawána) ښځ.م. میچونه، میچ کول، اندازه کونګ.

**کچه**(۱) (kāča) ښځ.م ۱) میچ، اندازه، کچ؛ ۲) قد؛ ۳) ص. نب. خام، اوم؛ ٤) بداصله، کم ذاته؛ ٥) کمرنګه؛ ٦) خړ، شرمنده؛ ۷) مج. لوچک؛ ۸) ښځ.م. پیچ، ګوته، یوه لوبه ده.

**کچه**(۲) (kačá) ښځ.م. ۱) خـچه، وره، کچه ګوته؛ ۲) ص. ښـځ.م. د کچ ښځینه شکل؛ ۳) اچه، دوزې د شړلو اواز.

**کچه توب** (kačatób) نـر.م. ۱) اوم والی، خـام والی؛ ۲) شرمېدنه، خړېدنه؛ ۳) کم اصلي، کم ذاتي؛ ٤) پیکه توب.

**کچه غرمه** (kačáǧarma) ق. بربخر، تنکی غـرمه، تنکی ځابت، غرمکی، ورخیمځه.

**کچه گوته** (kácagoáta) ښځ.م. دلاس وړه گوته.

**کچه لنگ** (kačaḷáng) نر.م. یوه ناروغي ده چې له ځای پرځای کښېناستلو او زیاتې یخنۍ څخه پیدا کېږي.

**کچې** (káče) صوت. ښځ.م. ۱) کچـه، اچه، دوزې د شړلو اواز؛ ۲) کوچې، د سپي د شړلو اواز.

**کچی** (kačáy) نر.م. ۱) کچل، کجی؛ ۲) کـوچنی، ورکوتی، وړوکی.

**کځر** (kajár) ص. نـر.م. ج. نیم پک، نیم لېهدا، په نیم سر پک.

**کځلي** (kajáli) ښځ.ج. خځلې، خس و خـاشـاک، گینګځر.

**کځن** (kaján) نـر.م. برستن، بړسـتـنه، تـلتـک، شیرک، گځر.

**کڅ** (kac) نر.م. ۱) شبله، کڅه، کڅی، داسې ځمکه چې د سیند غـاړې تـه یا د خـوړ تـرڅنګ واقـع وي؛ ۲) یو ډول توکـر دی؛ ۳) شـاګی، ګنډ؛ ٤) چت.

**کڅخول** (kacxwál) نر.م ۱) دغنمو سبوس، سي، د غنمو ګزارې؛ ۲) دډېګي ځګ.

**کڅخوله** (kacxwála) ښځ.م. هغـه خـولۍ چې د کڅ له توکر څخه جوړېږي.

**کڅکی** (kackáy) نر.م. کوتی، کورونګی، خرګندی، د خره بچی.

**کڅله** (kacalá) ښـځ.م. ډېـران، د غوشایو ډېرۍ، دخوشیو کوټه، ګواته، ګاته.

**کڅم** (kacám) نر.م. هغه خند چې پسونه نه پرېږدي چې پر مېږو وخېژي.

**کڅمڅی** (kácmacay) نر.م. پوسپسی، په غوږ کې پسپسی، غلې غلې او پټې خبرې کول.

**کڅمغ** (kacmáǧ) نر.م. یو ډول سـارانی خوړ نبات دی. د سارا خلک یې پخوي.

**کڅوال** (kacwal) د کڅ استوګن، کڅ مېشتی، د کڅ اړوند.

**کڅوړه** (kacóra) ښځ.م. کڅـونـه، خلته، خـریطه، تبلۍ.

**کڅوک** (kacwák) نر.م. کوڅوک، کڅویی، لکۍ، آب چېچک، یوه خپرېدونکې ناروغي ده.

**کڅون** (kacōn) فـا.نـر.م. هغـه کس چې ځاروي په کڅونې ساتي.

**کڅونی** (kaconáy) ښځ.م.ج. د چا ځـاروي د ځاروېو په څه برخه د یوه ټاکلي وخت لپاره ساتنه.

**کڅونه** (kacóna) ښځ.م. کڅوړه.

**کڅویکی** (kacwékay) نر.م. و.ګ. کڅوک.

**کڅه** (káca) ښځ.م. کڅ. کڅی، شبله (و.ګ کڅ).

**کخ** (۱) (kax) ص. نر.م.ج. خـراب او تریخ شی.

**کخ** (۲) (kux) نر.م. ۱) یو ډول خزنده ده چې د پسونو او مېږو تر لم لاندې پیدا کېږي؛ ۲) چینجی؛ ۳) و.ګ. کوخ.

**کختي** (kuxtí) نر.ج. زردالو، اشارې، خوبانۍ.

**کخړی** (kaxaṛáy) نرم. د یوه ستوري نوم دی.

**کخی** (kā́xay) نر.م ۱) چخکی، کوخک، قوخک، د مقعد چینجی؛ ۲) کیخی، یـو ډول کـوچنی ماشی دی؛ خوځی (ج. خوځي).

**کداړه** (kadā́ra) ښځ.م. توپ، غوزه، خرسک.

**کدای** (kadā́y) نر.م. ۱) یو ډول چونګښه؛ ۲) چوغه، شوقه، جوغه، یو ډول وړینه چپنه ده.

کدر (kád(á,ı)r) ص. نر.م.ج ۱) پیکه، تت، مکدر، هغه جسم چې رڼا ځنې نه شي تېرېدلای؛ ۲) ختنه، گاته؛ ۳) ناپاکه.

کدر (kádar) نر.م (ج. کدرونه) کادر؛ ۱) هغه هسته چې د یوه تنظیم غړي پرې راټـول وي؛ هغه ډله چې په یوه ټاکلي پراکتیک سره د یوه ټاکلي هدف لپاره په منظم او اکاډمیک چوکاټ کې کار کوي؛ ۲) تر عامو انسانانو د لوړ مهارت او لوړ پوهې درلـودونکي کسان؛ ۳) د افسـرانـو هینـت؛ ٤) چوکاټ؛ ٥) انگړ.

کدنی (kadanáy) نـر.م. د سپین بولدک پخوانی نوم.

کدو (kadú) نر.م. (ج. کدوان) و گ. کډو.

کدوچه (kadūčá) ښځ.م. یو ډول کوچنی کډو.

کدودانه (kadūdāná) ښځ.م. تپنیه، د کـولمو یو ډول چینجی دی.

کدورت (kudūrát) نر.م. ۱) تتوالی، پیکه توب؛ ۲) زړه تنگی؛ ۳) خوابدي، زړه بدوالی.

کدوزړی (kaduzáṛay) نـر.م. ۱) د کـډو تخم، د کدو زړی؛ ۲) کدودانه چینجی.

کدو سری (kadūsaray) نر.م. کډو سری؛ ۱) بې عقل، کم عقله؛ ۲) خالي مغزه.

کدوگک (kadūgák) نر.م. ښکـر، شاخک، یـوه آله ده چې د څـېـښـلـو په اساس وینه پرې راباسي.

کډبنی (kaḍbanáy) ص. نر.م. سیار کډوال.

کډبه (kaḍbá) ص.نب. کـډبنی، د کـډوال، د چا چې کډه گرځنده وي.

کډغالی (kaḍğālay) نر.م. کډ دغالی؛ وړوکی او ورکوټی کورگنی.

کډله (kaḍála) ښځ.م ۱) کوډله، جونگړه؛ ۲) غار، دوغله.

کډن (kaḍán) ق. له کډې سره، له اسباب او کورنۍ سره.

کډو (kaḍū́) نر.م. (ج. کډوان) کدو؛ یو ډول سابه دي چې دختکي په څېر اوږده یا گردې دانې لري.

کډوال (kaḍwā́l) ص. نر.م. ۱) کډه والا، کډبنی، کډبه؛ ۲) نر.م. کډبانه، کډه کوونکی.

کډوبار (kaḍūbā́r) نر.م. د کوچیانو د کډو بار.

کډوړی (kaḍūṛáy) نر.م. خرتکی، کدوړی، ورکوټی کډو، وړوکی کدو.

کډوسری (kaḍūsáray) نر.م. ۱) سوډر، احمق؛ ۲) خالي مغزه.

کـډه (káḍa) ښځ.م. (ج. کډې) ۱) د کور اسباب؛ ۲) لېږدېدنه، کوچ کشي؛ ۳) مج. ماندینه.

کډه کول (káḍakawə́l) مص. مت. ۱) کوچ کول، کډه بارول؛ ۲) واده کول، ښځه کول.

کـډه کېدل (kaḍakedə́l) مص. ل. په کـډه تلل، کوچېدل.

کډهل (kaḍhal) نـر.م. ۱) ډنډه، هغه ځمکه چې د شولو د کرلو لپاره تیاره شوې وي؛ ۲) ډوغـل، کنده.

کډی (kaḍáy) نر.م. ژور ځای دی چې جولا د تنستې اوبدلو په وخت کې خپلې پښې پکې کښېښته کوي.

کډۍ (kaḍə́y) ښځ.م. ۱) د کنې کارگاه؛ ۲) کنې ستنه، د تنستې پایه؛ ۳) نازک او خراب توکر.

کذاب (kazā́b) ص. نر.م.ج. ډېر دروغجن، سخت دروغژن.

کذب (kizb) نر.م.ج. درواغ، سوړه، دروغ.

کر[1] (kar) نر.م. کرهنه، زراعت.

کر[2] (kər) صوت. نر.م. گر، د کاغذ یا توکر د څیرلو اواز؛ ۲) ص. نـر.م. په یـوه کلک شي د یوه بل کلک څیز د تېرولو اواز.

**کرا** (karā́) ښځ.م. ۱) کرهار، کراري، کرها: ۲) و.گ. کرایه.

**کراب** (kurā́b) نر.م. تبک، تبق، تبخ، یوه ناروغي ده چې دڅاروي پر پښو او خولې اغېز کوي.

**کراپند** (krāpánd) نر.م. کرپند، یوه غرنۍ ونه ده چې ښې ژاولې ځنې جوړېږي.

**کراچ** (krāč) نر.م. چم، پونده: سبزه یا کبله لرونکې پنده چې په ښېل یا یوم سره را ښېله شي.

**کراچۍ** (karāčáy) ښځ.م. رچګاډۍ، ګاډۍ، ډوله نقلیه وسیله ده چې انسان یا حیوان یې راکاږي.

**کراچۍ وان** (karācaywā́n) ص.نر.م.ج. کراچۍ والا، کراچۍ چلوونکی.

**کرار** (karā́r) ق. ۱) غلی، چوپ، قـرار، ورو؛ ۲) ص.نر.م. خاموشه، متین، بې ازاره.

**کرارتیا** (karārtyā́) ښځ.م. قـراروالی، قلارتیا، چوپتیا، قلاري، کراري.

**کراره** (karārā́) ښځ.م. ۱) څاروي ګرونه، د څـاروي خرخره کول: ۲) ق. ۱) و.گ. کـرار: ۲) ښځ.م. کراري، ارامي، سکون، سوله.

**کراره کراري** (karārákarāri) ښځ.م. ۱) آرامه ارامي: ۲) بې غمه بې غمي، د سولې حالت.

**کراري** (karāri) ښځ.م ۱) ارامي، قراري؛ چوپتیا، چوپ والی: ۲) بې غمي.

**کراری** (karāráy) نر.م. کرهار، کرا.

**کراړ** (krāṛ) ص.نر.م.ج ۱) کلک، مضبوط، کرور؛ ۲) نر.م. تر اټک آخوا اوسېدونکی.

**کراړک** (krāṛák) نـر.م. تریو پنېر.

**کراړه** (krāṛa) ص.ښځ.م. ۱) سخته ځمکه، کلکه ځمکه: ۲) داسې ځمکه چې تېږې او کاڼي ولري.

**کراز** (krāz) نـر.م. کرېز، کوریز، د مرغیو زړې یا مرداري ښې (بونکه) غورځېدنه.

**کرازي** (krāzí) ص.نب. له حقیقته لیرې، بې اساسه (خبرې).

**کراږند** (krāẓánd) ص.نر.م. کـراږنده، کراژند، د بدپرهېزۍ له امله د ناروغۍ راوږدېدل.

**کراږندتیا** (krāẓandtyā́) ښځ.م. کـراغندتیا، د بدپرهېزۍ په وجه د ناروغۍ داوږدېدنې حالت؛ ۲) هغه حیوان چې ناڅاپه یې ویښته ځیږه شوي یا کومه ناروغي ورپېښه شوې وي.

**کراسته** (krā́sta) ښځ.م. ۱) لمڅی، لیمڅی، له وړیو جوړ شوی فرش؛ ۲) مج. هغه شی یا غله دانه چې د لوندوالي له امله ښه نه میده کېږي؛ ۳) کراسګۍ، یو ډول سابه دي.

**کراسته ګر** (krāstagár) نر.م. لمڅي ګر، لیمڅی جوړوونکی، کراسکر، کراستګر.

**کراسته ګۍ** (krāstagáy) ښځ. م.و ګ. کراسته۳).

**کراسګر** (krāsgár) فا.نر.م. و.ګ. کراسته ګر.

**کراغ** (krāğ) نر.م. کړاغ، د چا چې سترګې په کولکو کې ننوتې وي.

**کراغند** (krāğánd) نر.م.ج. و.ګ. کراږند.

**کراکښ** (krākáṣ) ص.نر.م.ج. کرېکښ، کرایه کښ، کراکش، څوک چې په کرایه شیان وړي او راوړي.

**کراکنډه** (krākánḍa) ص.نب. ۱) کمزوری، کم قوته، ضعیف، ناتوانه، بې سیکه.

**کرامت** (karāmát) نر.م. (ج. کرامات) ۱) لویي، سترتوب؛ ۲) مېړانه، ځوانمردي؛ ۳) په لغت کې یـو ډول اعـزاز دی او په اصطلاح کې د یوه داسې خارق العاده کار څرګندېدل چې له ایمان، اسلام او صالحه اعمالو سره مقارن وي.

**کرامتي** (karāmatí) ص.نب.نر.ښځ.م. د کرامت څښتن، کرامت لرونکی.

کرانړی (karānṛáy) نر.م. زوړ تو کر چې ښځې یې د میږو د لوشلو پر وخت په خپلو زنګنو اچوي.

کراوی (karāway) نر.م. کروی؛ ۱) ساتونکی؛ ۲) سرپرست.

کراهت (karāhát) نر.م کراهیت؛ ۱) نه خوښېدنه؛ ۲) ناراضتیا؛ ۳) سختي؛ ٤) کرکه؛ ٥) کرایت، شرعي مکروه والی.

کرایه (karāyá) ښځ.م. (ج. کرایې) کرا، باړه، کرایې؛ هغه مبلغ چې د څمکې موټر، کور او... د استعمال په بدل کې تادیه کېږي.

کرایه وړونکی (karāyáwṛū́nkay) فا.نر.م. وګ. کراکښ.

کرایي (kırāyí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) د کرایې، د کرا، هغه څه (ماشین، کور) چې په کرایه وي؛ ۲) کرایه.

کرب (karáb) عد. کهرب، سل زره میلونه.

کرباس (karbā́s) نر.م. بیستی، خامتا، خمتا، شوی.

کربانه (karbā́ṇa) ص.نب. تور ځلېدونکی (رنګ)

کربسه (karbása) ښځ.م. ۱) مالوچ، وړی، پنبه؛ ۲) په شرعة الاسلام کې مخاطب تـه د ناز د خطاب په توګه څو ځایه راغلی دی.

کربسکه (karbáska) ښځ.م. پومبه، پنبه، مالوچ، کربوسکی، کربسه، کرباس.

کربښا (karbaṣ̌ā́) نر.م. د پیشو هومره یو حیوان دی.

کربک (karbák) نر.م. وګ. کربوړی.

کربوړی (karbóṛay) نر.م. کربوړک، کربک، څرمښکی ته ورته خزنده ده.

کربوسکه (karbū́ska) ښځ.م. وګ. کربسه ۱).

کربوسکی (karbū́skay) نر.م. ۱) وګ. کربسه؛ ۲) د دوړو چناسکې.

کربوښا (karbū́ṣ̌ā) نر.م. کربښا، تورلمی، د پیشو په اندازه یو حیوان دی.

کربېټ (karbéṭ) ص. نر.م. ج. کچل، رڅ، کجې، کجی (سری)، څوک چې کوډ ووړ څې.

کربېزن (karbezán) ص.نر.م. کتبېزن، ګرنګن، ګرنګوک، هغه څوک چې تل یې ګرنګ بهېږي.

کربېزی (karbézay) جن. ګرنګ، قرمزی، ګرینګ، کرمېزی، قنبی.

کرپ (krap) صوت. نر.م. خرچ، خرپ، په غابښو سره د کلک شي د ماتولو اواز.

کرپا (krapá) صوت. ښځ.م. خرپا، کرپې، خرپې، په غابښو سره د کلک شي د ماتولو اوازونه.

کرپال (karpā́l) ص. نر.م. ج. قرتو، کرتن، کرتو، څوک چې د بري زیاتې خبرې کوي.

کرپالی (karpā́lay) نر.م. خره، کربړه، کرپل، د څمکې ختـه چې د سېلاب نه وروستـه وچه شي.

کرپان (krıpā́n) نر.م. یو ډول خنجر دی.

کرپتاوه (kraptāwá) ښځ.م. سلواغه، د ښاه بوکه، د کوهي بوکه، ډولچه.

کرپړه (karpáṛa) ښځ.م. وګ. کرپالی.

کرپله (karpála) جن. یو ډول سابه دي.

کرپندوکی (krapandū́kay) نر.م. کرپندوکی، ککرکی، سرلېښتی، کرپندی، غضروف.

کرپندی (krapandáy) نر.م. ۱) هغه شی چې د ژوولو په وخت کې کرپې کوي؛ ۲) کرپندوکی؛ ۳) د اوږې د رشپېل څوکه.

کرپول (krapawə́l) مص. مت. خرپول، خرچول، په غابښو سره کلک شی ماتول یا ژوول.

کرپوله (karpūlá) ښځ.م. بادرنج بویه، یو خوړ بوټی دی چې ګنې پاڼې او ژېړ ګلان نیسي.

**کرپی** ( krapáy ) صوت. نر.م. کرپا ، خرپا ، په غاښو سره د کلک شي د ژوولو یا ماتولو اواز.

**کرپېدل** ( krapedə́l ) مص. ل. خرپېدل په غاښونو سره د کلک شي د ژوولو یا ماتولو اواز وتل.

**کرت** ( karát ) ق. پېره ، پلا ، ځل ، وار ، کرتې ، نوبت.

**کرتب** ( kartáb ) نر.م. کرتوت؛ ۱) کار ، فعالیت؛ ۲) حمله.

**کرتوت** ( kartūṙt ) نر.م. و گ. کرتب.

**کرته** ( karáta ) ق. و گ. کرت.

**کرټ** ( kruṭ ) ق. و گ. کورټ.

**کرج**(۱) ( karj ) ص. نر.م. ج. کرج ، ۱) روږل شوی ، روږدی شوی ، هغه باز چې روږل شوی وي؛ ۲) کورجی ، زوړ باز ، ترینا ک باز.

**کرج**(۲) ( karáj ) نر.م. (مو.) کهرج ، کرج ، کهدج؛ سُر ، پرده ، له اوو گونو سرو څخه د لومړني سر نوم چې اواز یې تر ټولو کښته دی.

**کرج گرام** ( karajgrā́m ) نر.م. (مو.) له درو گرامو څخه یو دی ، تر ټولو سرو کښته دی.

**کرچ**(۱) ( kráč ) صوت. نر.م. ۱) خرچ ، د غاښونو د چیچلو اواز؛ ۲) کرپ ، کرپی؛ ۳) په بېل اړول شوی څمکه.

**کرچ**(۲) ( krač ) نر.م. کریچ ، یو ډول توره ده.

**کرچل** ( karčál ) ص. نر.م. ج. و گ. کچل.

**کرچم** ( karčám ) جن. زعفران.

**کرچول** ( kračawə́l ) مص. مت. ۱) کرچل ، خرچل ، غاښونه چیچل؛ ۲) په بیاتي سره غوڅول.

**کرچونی** ( kračúnay ) نرم. و گ. کرپندوکی.

**کرچه** ( kráča ) ښځ.م. په تهغر کې مثلث ډوله گل او نخش و نگار.

**کرچهار** ( kračahā́r ) صوت. نر.م. کرچی ، کرچا ، خرچهار ، د غاښو چیچلو پر له پسې اواز.

**کرچی**(۱) ( krā́cay ) نر.م. ۱) یو ډول سابه دي؛ ۲) یو ډول غرني وابښه دي ، شاتره؛ ۳) یو ډول غرنی بوټی دی.

**کرچی**(۲) ( karčáy ) ص. نر.م. ۱) سخت زړی ، بې رحمه؛ ۲) بې حوصلې؛ ۳) نر.م. کرېښی ، لاغو ، کاټیری ، ارکاره ، هرکاره.

**کرځ** ( kraǰ ) ص. نر.م. لټ ، ناراسته ، تمبل ، تنبل.

**کرخت** ( kàraxt ) نر.م ۱) مړ ، بې حرکته؛ ۲) سوړ ، بې تودوخې؛ ۳) آرامه ، په کرار ، په قرار.

**کرخولکه** ( karxūláka ) ښځ.م. هغه څېړوالی چې پر لرگي باندې له توږلو وروسته پاتې شي.

**کرخه** ( karə́xa ) ښځ.م. د وریو خیرې ، د پسه خیرې.

**کرخی** ( karxə́y ) ښځ.م. یو پلی لرونکی نبات دی.

**کردار**(۱) ( kərdar ) نر.م. کرد ، کرداری؛ هغه شیان چې ناوې یې د پلار له کوره د مېړه کره وړي.

**کردار**(۲) ( kırdā́r ) نر.م. ۱) عمل ، کار؛ ۲) طرز ، چلند؛ ۳) رول؛ ٤) دود ، دستور؛ ٥) سلوک.

**کرداری** ( kərdāráy ) نر.م. و گ. کردار(۱).

**کردونی** ( karduṇay ) نر.م. کودوړی ، کودونی ، کودرکی.

**کرده**(۱) ( kardá ) ښځ.م. څېره ، جوله ، قواره ، شکل.

**کرده**(۲) ( kardá ) ښځ.م. (ج. کردې) چار ، عمل ، کړه وړه.

**کرړکی** ( kərə́ṛkay ) نر.م. یوه غرنۍ گیاه ده چې د انگورو د پاڼو غوندې پاڼې لري.

**کرړول** ( karṛawə́l ) مص. مت. رغړول ، کولول ، تیرېږ یا نور څه ته حرکت ورکول.

**کرړه** ( kə́rṛa ) ښځ.م. ۱) د نسب سلسله ، د نسب سلاله؛ ۲) د یوه بوټي نوم دی.

**کرړی** ( kıṛṛáy ) نر.م. ۱) کیړړی ، ماچونگن ، څماڅار ، چورچورک ، یو ډول حشره ده؛ ۲) ص. نر.م.

سپک، حقیر؛ ۲) گرړی، هغه ارابه چې په لاس کرځوله کیږي.

**کرړېدل** (karṛedə́l) مص. ل. د تیږو یا نورو شیانو له یوه ځایه بل ځایه ته رغړېدل.

**کرزو** (karzū́) نر.م. یو ډول بېلچه.

**کرزه** (kráza) ښځ.م. کریږه، کریغه، چغه، چیغه، بې اختیاره چغه.

**کرسان** (karsā́n) ص. نر.م. چج.

**کرسپه** (kraspá) ښځ. م. دوژغنو بیاسته، د وزغنو پړی.

**کرسمس** (krısmís) نر.م. و گ. کریسمس.

**کرسن** (karsə́n) ص. نر.م. ج. کروسند، کرسند، په اسانه ماتېدونکی.

**کرسی** (karsáy) نر.م. یو ډول غرنی گیاه ده چې د سترگو په ناروغیو کې کار ترې اخلي.

**کرسی** (kursə́y) ښځ.م. کرسي: ۱) څوکی، چوکی ۲) تخت، سریر؛ ۳) رسمي مقام؛ ٤) د اولسو په اصطلاح اتم فلک.

**کرش** (kraš) ص. نر.م. ځپا، ځپاری، د پښو اواز.

**کرشپه** (krašpá) نر.م. یو ډول غرنی گیاه ده، پاڼې یې ښه بوی لري.

**کرشکه** (kráška) ښځ.م. یو ډول خړ رنگی بوټی دی چې ښه بوی لري.

**کرشکی** (kráškay) نر.م. یو بوټی دی، انمزن گل لري.

**کرشمه** (karašma) ښځ.م (ج. کرشمې) ۱) ناز، مکېز، نخره؛ ۲) غمزه، په وروځو او سترگو اشاره.

**کرشنه** (krə́šna) ښځ.م. کرښنه، ۱) هنر؛ ۲) نخش، نقش، حکاکي.

**کرشنیل** (kurıšníl) نر.م. کورشنیل، یو سیخ دی چې په کنگرو په جوړولو او جاکټ اوبدلو کې کار ځنې اخلي.

**کرښ** (karaṣ) نر.م. کښ: ۱) د پښو آواز؛ ۲) منډ، پل، نښه؛ ۳) کرښېل، د پښې د تلي نښه.

**کرښنده** (kárṣənda) ښځ.م ۱) علامه، نښه، نښانه، اثر؛ ۲) کشول، دیوه څه په زوره بېول یا په زوره په ځان پسې کشول.

**کرښندی** (karṣəndáy) نر.م. ۱) پلان، نقشه، طرحه، تجویز، پروگرام؛ ۲) تصویر.

**کرښنه**(۱) (karṣná) ښځ.م. د لرغوني کنډوالې یا ویرانې نښه او اثر.

**کرښنه**(۲) (kráṣna) ښځ.م ۱) حکاکي؛ ۲) نقاشي ۳) یوه عنعنه ده چې د محرقې له ناروغه یوه کرښه راتاووي، چې په نورو پورې نه شي.

**کرښه** (kárṣa) ښځ.م (ج. کرښې) ۱) لیکه، خط، سطر؛ ۲) نښه، نښانه، اثر، علامه؛ ۳) د برید، پوله، تک.

**کرښی** (karṣáy) نر.م. خط کښ، خطکش.

**کرغ** (kurá́ğ) نر.م. کورغ، یو تریخ بوټی دی.

**کرغ** (kurū́ğ) نر.م. و گ. قرغ.

**کرغچکه** (korğačáka) ښځ.م. کلغجه، گیږکه، کشکره، عککه، یوه مرغۍ ده.

**کرغړ** (kargā́ṛ) نر.م. غم، کرغړه، پرېشاني.

**کرغړوج** (kargoṛū́j) نر.م. ډنډغر، چنغړک، چینغړک، قان قورتک.

**کرغړه** (kargā́ṛa) ښځ.م. ۱) کرغړ؛ ۲) دکارگه کرغېږه، د کارغه د ښو او بدو اواز.

**کرغشی** (kargə́šay) ص. نر.م. ځیږ، دیږ، سخت، ناهموار.

**کرغښی** (kargaṣáy) نر.م. کجکی، د ژامې وروستنی هډوکی.

**کرغم** (kargám) نر.م. ډوډی، د کوناټي هډوکی، دحیواناتو د کوناټي راوتلی هډوکی.

**کرغوچ** (kargwác) ص.نر.م.ج. غوځ، کرغوځ، پرې، قطع.

**کرغول** (kargól) نر.م. د مرغانو یوه ناروغي ده.

**کرغه** (۱) (krága) ص. نب. وچوبی، وچه، بې وښو، بې گیاه (ځمکه).

**کرغه** (۲) (kargá) ښځ.م. ځرڅای، ورشو، د مالونو د پوولو ځای.

**کرغی** (kargáy) ښځ.م. یو ډول نبات دی.

**کرغېړن** (kargeṛán) ص.نر.م. کرغېړ، ۱) خچن، ناولی، خیرن؛ ۲) خراب، گووډ؛ ۳) بدمرغه.

**کرغېړنتوب** (kargeṛəntób) نر.م. ناولتیا، کرغېړنوالی، خیرنوالی، خچنوالی، بدمرغي.

**کرغېړنول** (kargeṛənawál) مص.مت. خچنول، خیرنول، چتلول، بدمرغول.

**کرغېړنېدل** (kargeṛanedál) مص.ل. خچنېدل، خیرنېدل، چتلېدل، بدمرغېدل.

**کرفس** (karáfs) نر.م. کروسه، یوه گیاه ده، سپین جگ تارونه لري او په پخلي کې کارځنې اخلي.

**کرک** (۱) (krák) نر.م. ۱) وچه خره، د سېلاب ختنه چې وچه شوې وي او بیا چاودلې وي؛ ۲) سېر، کیل، کرښه، د بیوې لیکه، د قلبې خط.

**کرک** (۲) (kurk) نر.م. یو ډول ورین توکر دی.

**کرکانډ** (karkánd) ښځ.م. وگ. کررکانډی.

**کرکانډی** (karkánday) نر.م. کرکانډه، کرکنډه، لوی غټ گټ چې له غره رارغړېدلې وي.

**کرکاڼی** (karkáṇay) نر.م. د محک ډبره، هغه کاڼی چې د سرو او سپنو زرو عیار پرې ازمایي.

**کرکټ** (krıkáṭ) نر.م. وگ. کریکیټ.

**کرکټر** (karıkṭár) نر.م. کیریکټر؛ ۱) ممتاز صفت، مشخصه، ممیزه نښه؛ ۲) هره قرارداد ي نښه؛ ۳) پرځان برلاسی، راسخ عزم.

**کرکجن** (krakjə́n) ص.نر.م.ج. کتري، کرکه ناک، کرکن، کرکه کوونکی، کرکهجن.

**کرکر** (۱) (kurkúr) ص. نرم. ځښهار، کورهار.

**کرکر** (۲) (kərkár) نر.م. د یوه شي د کرولو اواز.

**کرکرانی** (kərkərānáy) نر.م. گرگرانکه، غرغرانکه د کوچنیانو د لوبو یوه لرگینه آله ده.

**کرکره** (karkará) ښځ.م. (ج. کرکرې) چرخوېل، چرخوالی، قرقره، جوغه، د چرگ تاج.

**کرکري** (kurkurí) ص. نب. نر. ښځ.م. ۱) خوړل شوی؛ ۲) چخن، چوخن.

**کرکری** (۱) (kərkaráy) نر.م. دښځدو په اندازه یوه مرغۍ ده چې په سینه کې سپین تکی لري.

**کرکری** (۲) (kırkəráy) نر.م. تیپچه، غنکی، غنگی، کرکری، یوه آله ده چې د مرز اواز ترې وباسي.

**کرکړی** (kərkaṛáy) نر.م ۱) کرکړی، گراره، کرگړی، له ځاځخه د اوبو ایستلو ځرخ؛ ۲) لرگینه کړۍ چې د ځاروي په غاړه کې اچوي او پرې وړپوړي ترې؛ وگ. کرکړی.

**کرکړې** (karkaṛé) ښځ.ج. غرغړې.

**کرکن** (krəkə́n) ص.نر.م.ج. وگ. کرکجن.

**کرکنډ** (karkánḍ) نر.م. ۱) لویه اواره تیږه چې له غره رارغړي؛ ۲) یوه توته ډوډۍ.

**کرکنډول** (karkanḍawə́l) مص.مت. رغړول، کولول، تولول.

**کرکنډه** (karkánḍa) ښځ.م. ۱) کانډه، کنډه، لویه تیږه؛ ۲) لویه تیږه چې له غره ځخه راغړي؛ ۳) مج. غوره، لاپه.

**کرکنډېدل** (karkanḍedə́l) مص. ل. رغړېدل، کولېدل، تولېدل.

**کرکڼ** (karkáṇ) نر.م. جاخه، بجغي، گڼ او ځنگلي نباتات چې یو په بل کې سره ننوتلي وي.

**کرکنه** (kərkə́na) ښځ.م. یوه اغزنه ونه ده، سري سري داني کوي چې خوړل کېږي.

**کرکول**(۱) (karkawə́l) مص. مت. تخم شیندل، تخم کرل، څمکه کرل، کرهنه کول.

**کرکول**(۲) (karakū́l) نر.م.ج. قرقل، قره قل، قره قلي؛ ۱) د مرکزي آسیا پسه؛ ۲) غرند، ول ول او پت لرونکي پوستکي دي چې له نوي زېږېدلي وري څخه لاس ته راځي.

**کرکولي** (karakū́li) ښځ.م. قره قلي، قره قولي، ۱) یو ډول خولۍ ده چې د کرکول له پوستکي څخه یې جوړوي؛ ۲) ص.نب. په کرکول اړوند.

**کرکه** (krə́ka) ښځ.م (ج. کرکې) ۱) نفرت، تنفر؛ ۲) وېره، ډار، بیم؛ ۳) ځان ژغورنه.

**کرکه کول** (krə́kakawə́l) مص. مت. ۱) نفرت کول؛ ۲) بد راتلل؛ ۳) وېره کول؛ ٤) ځان ژغورل.

**کرکه ناک** (krəkanā́k) نر.م. وګ. کرکجن.

**کرکی** (karkə́y) نر.م. خر.

**کرکی** (karakə́y) ښځ.م. پال، سسپاره، سپاره، سرسپار.

**کرکېدل** (kā́rkedə́l) مص. ل. زراعت کېدل، تخم کرل کېدل، څمکه کرل کېدل.

**کرکیله** (karkī́la) ښځ.م. کرکیل، کرنه، کرهنه، کرونده.

**کرکیمه** (karkī́ma) ښځ.م. کرکیمه، کوړکی، کرکومه، کپس، قفس، پنجره.

**کرګدن** (kargadā́n) نر.م. یو غټ، غښتلی تر مېښې لوی او اوږد حیوان دی.

**کرګر** (kargā́r) نر.م. بزګر، کرکوونکی، څوک چې څمکه کري.

**کرګري** (kargā́ri) ښځ.م. بزګري، کرونده ګري، دهقاني.

**کرګس** (kargā́s) نر.م. ۱) کجیر، یو غټ الوتونکی مرغه دی؛ ۲) د سینې هغه برخه چې ګروې ته نېږدې ده.

**کرګی** (kargə́y) ښځ.م. یو بوټی دی، واړه اغزي او تېرې پاڼې لري.

**کرل**(۱) (karə́l) مص. مت. کښت کول، تخم اچول، زراعت کول.

**کرل**(۲) (karā́l) نر.م. ۱) کنګل، یخی؛ ۲) پېروی، رش، قیماق؛ ۳) د برینه لنګری، د برین اونګ.

**کرله** (karə́la) ښځ.م. کرهنه، کښت وکر.

**کرم**(۱) (karā́m) نر.م. ۱) سخاوت، ورکړه، بخشش ۲) مهربانه؛ ۳) د ګوپې په څېر سابه دي.

**کرم**(۲) (kurm) نر.م. کورم، یو ډول څرمنه ده.

**کرماچو** (karmā́čū́) نر.م. د یوه بوټي نوم دی، سرې داني کوي. وګ. کچماچو

**کرمچ** (kırmíč) نر.م.ج. کیرمیچ؛ ۱) یو ډول سپک بوټونه دي؛ ۲) یو ډول کلک ټوکر دی.

**کرملاغ** (karməlā́ğ) نر.م. سرلاتی، سرکونډی، د سراو کونې اوښتلو عمل.

**کرمن** (karmə́n) ص. نر.م.ج ۱) بې خوبه، شوګیر وهلی؛ ۲) چینجن، چنجي وهلی.

**کرمنتوب** (karməntṓb) نر.م. کرمنوالی، بې خوبی، شوګیره، شپه وهنګ، شپه رونونګ.

**کرمنګ** (kurmáng) نر.م. تنځری، تمځری، یوه مشهوره مرغۍ ده.

**کرمونډ** (karmū́nḍ) ص.نر.م.ج. بونډی ګوتی، د چا چې ګوته لنډه، نیمګړې یا معیوبه وي.

**کرمه** (kárma) ښځ.م ۱) د نصیب ګوته، د شهادت ګوته؛ ۲) ځینې خلک یې خمچې ګوتې ته وایي.

**کرن** (krən) ص. نر.م.ج. خوار، کمزوری، ډنګر، په تن خوار، بې غوښو.

**کرنا** (karnā́) ښځ.م. مو. قرنا، ښکر (برغو)، ستر سرنی، د موسیقۍ یوه د پو وهلو آله ده.

**کرنپوهنه** (karənpōhána) د کرنې علم، زراعت پوهه، زراعت پېژندنه.

**کرنج** (karnáj) نر.م. کرنجه، یو ډول اوږده ترښځه ده، د کولنګ کار هم ترې اخلي.

**کرنچکی** (krančakáy) نر.م. کنبی، تسکوره، کوبین، یو سری کولنګ.

**کرند** (kuránd) نر.م. داګ، میدان، دښت، سارا، بېدیا.

**کرندک** (karandák) نر.م. یو اغزن نبات دی.

**کرندوی**[1] (karandwáy) نر.م. یو ډول ګنډون دی چې د جوال په ښخ کې په عمودي ډول ګنډل کېږي.

**کرندوی**[2] (karandóy) ص.نر.م.ج. بزګر، کرګر، کښت کوونکی، زارع.

**کرندی** (krā́nday) نر.م. تسکوره، تسکوره، یو سری کولنګ.

**کرنډ** (krənd) نر.م. کلک شوی نو، کلکه شوې زوه، سخته شوې زوه (نو).

**کرنډی** (karandáy) ښځ.م. ۱) رمبی، څمڅه، څمڅی، چمچه؛ ۲) ګلماله؛ ۳) ماله، پلنه تخته چې اړول شوې ځمکه د غویانو په وسیله پرې اواروي.

**کرنک** (karánk) نر.م. ۱) کېپری، ککری، څنکه، لوېرنده؛ ۲) کرنکه، د سا اخیستلو نل.

**کرنګ**[1] (karā́ng) نر.م. ۱) کنګل، یخی؛ ۲) ص. نر.م.ج. په وینو لړلی؛ ۳) و.ګ. کرنه.

**کرنګ**[2] (kurā́ng) ص. نر.م. و.ګ. کورنګ.

**کرنګول** (karangawā́l) مص.مت ۱) په وینو لړل، په وینو ککړول؛ ۲) کنګلول؛ ۳) کلکول.

**کرنګېدل** (karangedā́l) مص.مت. ۱) په وینو لړندېدل؛ ۲) یخښدل، کنګلېدل؛ ۳) کلکېدل.

**کرنمل** (karə́nmal) نر.م. د کرنې او کروندې مینه وال.

**کرنه** (karə́na) ښځ.م. و.ګ. کرهنه.

**کرنیل** (karnáyl) نر.م. کرنل، د ګروال، هغه افسر چې په رتبه کې تر لیفتننټ کرنل لوړ وي.

**کرنی** (karṇə́y) ښځ.م. کاتېری، لاغو، کرېسی، ارکاره، کتېری، کرېښی.

**کروا** (karwā́) نر.م. (مو.) کهروا، د تومر یو ډول دی چې د کهروا په تال ویل کېږي.

**کرواړه** (karwā́ṛa) ښځ.م. ۱) کلواړه، د رشې تر اخیستلو وروسته د دانو ټولونه؛ ۲) دخاورو له ورو ورو ټوټو او ډېرو سره لوبې.

**کروبي** (karūbī́) نر.ج. مقربې فرشتې، هغه ملایکې چې عرش عظیم یې پر اوږو ولاړ دی.

**کروت** (kráwt) نر.م. رخه، حسد، بغض.

**کروتی** (krawtáy) ص.نر.م. ۱) رخه ناک، رخه لرونکی، حسود؛ ۲) بد خویه، تند خویه.

**کروڅکی** (karóckay) نر.م. کوری، د کوري د ونې جړه چې په دوا کې کارېږي.

**کروخ** (karū́x) نر.م. و.ګ. کرخ.

**کروړ** (kroṛ) ص. نر.م.ج. ۱) کلک؛ ۲) غښتلی؛ ۲) د ورو ضابطانو څلورمه رتبه؛ ۳) عد. لس ملیونه، یا سل لکه.

**کروړپتي** (kroṛpatī́) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. ۱) ملیونر؛ ۲) غټ پانګوال.

**کروړول** (kroṛawā́l) مص. مت. کلکول، سختول، محکمول، مضبوطول.

**کروړه**[1] (karoṛá) ښځ.م. ۱) یو ډول متروکه ده؛ ۲) له کړکوجوړه رسی.

**کروړه** (۲) (karwāra) ښځ.م. سپنګیر، یو ازغن بوټی دی چې سرې خوږې دانې نیسي.

**کروړی** (karwaṛáy) ص. نر.م. بخیل، سوګت، سخت.

**کروړېدل** (kroṛedə́l) مص. ل. کلکېدل، سختېدل، کروړکېدل.

**کروز** (krūz) نر.م.ج (عس.) د زیات قدرت لرونکي یو ډول لاربښودي شوي توغندي دي.

**کروزر** (krozə́r) نر.م. ۱) د منځني ظرفیت لرونکې جګړه ییزه بېړۍ؛ د پولیسو موټر.

**کروسند** (krawsə́nd) ص.نر.م. کړسند، کړوسند، چغجي، هغه شی چې په اسانۍ سره ماتېږي.

**کروسه** (karwasá) ښځ.م. وګ. کرفس.

**کروشان** (krūšā́n) نر.م. یو وړوکی لرګی دی چې د پنبې په پونده کې د څرمنې ټوټې باندې ننه باسي او بیا یې پرې کلکوي.

**کروښکۍ** (kərūṣkáy) ښځ.م. د کور کمبله، هغه تغر چې په ډېره او چوتره کې غوړوي.

**کروښی** (krósay) نر.م. ۱) د کمیس د غاړې استر؛ ۲) رښکۍ، د توکر ټوټه.

**کروغ** (krog̣) نر.م. وګ. کارګه.

**کروکي** (kurūkí) ښځ.م. کرکي؛ ۱) هغه څه چې ظاهر وي او په سترګو ښکاري؛ ۲) نق. هغه نقاشي چې بې رنګه وي.

**کرول** (kərawál) مص.مت. ۱) ګرول، تخریشول؛ ۲) سولول؛ ۳) نر.م. سپینه وربخ چې په توره وربخې کې راخرګنده شي؛ ۲) د شاتو د مچیو قراول.

**کرولی** (karwaláy) نر.م. کلیک، سپېرخوکی، یو لرګی دی چې په سر باندې کې یې اچوي او د کوندې او جغ اړیکې ساتي.

**کروماټیک** (kromāṭík) نر.م ۱) رنګ لرونکی، د رنګ؛ ۲) مو. په نیمو ټونو مخ ته تګ یا د دې استعمال، لکه کروماټیک سکېل.

**کرومو** (kromó) ت.ت. ۱) لرومه، یو ترنګ توک دی چې د رنګ، رنګه مانا لري، لکه کروموزوم؛ ۲) وګ. کرمه.

**کروموزوم** (kromozóm) نر.م.ج. (بیا.) میله ډوله مایکروسکوپیک جسمونه دي، چې ارثي صفتونه لیږدوي.

**کرونا** (kroná) نر.م. کارونا، د لمر تاج، د لمر پورتنی برخې ته وایي.

**کروندګر** (karwandgár) فا.نر.م. وګ. کرونده ګر.

**کرونده** (karwandá) ښځ.م(ج. کروندې) ۱) کښت، زراعت، کرهنه؛ ۲) د کرلو ځمکه، د کر ځمکه.

**کرونده ګر** (karwandagár) ص.نر.م.ج. کروندګر، کرګر، کرکوونکی، کرونکی.

**کرونوسایکل** (kronosāykál) نر.م(ژ.) د خبرونو په لیکلو کې هغه ترتیب چې پېښې لکه څرنګه چې منځ ته راغلې وي هغسې ولیکلی شي.

**کرونولوجي** (kronolojí) ښځ.م. نېټه لیک؛ د تاریخي حوادثو د پېښېدو د وخت په اساس د هغو ترتیبه شوې شرحه یا جدول.

**کروه** (kurúh) نر.م. ښځ.م. د مسافې یو واحد دی؛ چې تقریباً دوه میله کېږي.

**کروي** (kurawí) ص. نب. نر. ښځ.م.ج. ۱) د کرې، د کرې په ډول، کرې ته منسوب؛ ۲) نر.م. کره.

**کروی** (karwáy) ص. نر.م. ۱) کښې، د کښت ساتونکی؛ ۲) د مبالغې او کثرت کلیمه ده.

**کروۍ** (karwáy) ښځ.م. د ټانټو او پلالې دلۍ.

**کروېږه** (karwéza) ص. نب. کاواکه، بې مغزه، بې فکره.

**کره**(۱) (kára) نر.م. د ۱) کور مغیبره حالت دی او په اضافي حالت کې د کور په مانا استعمالېږي؛ ۲) ښځ.م. بهل، یوم.
**کره**(۲) (kará) ص. نب. ۱) نېره، سوچه، خالص؛ ۲) هن. له نقده تېر؛ ۳) ښځ.م. وښی، دبنګړي په ډول د سرو یا سپینو زرو یوګانه ده.
**کړه**(۳) (kará) ف. کاره، د کرلو استمراري ماضي ده.
**کره**(٤) (kurá) ښځ.م. (ج. کرې) ۱) هرګردی او مدور شی؛ ۲) مج. ځمکه، د ځمکې کره؛ ۳) داسې کروي سطحه چې د هغې ټولې نقطې له مرکزه یو برابر فاصله ولري؛ ٤) بتې، د پښې اورغالی.
**کرهار** (karahár) صوت. نر.م. کرهاری، کرار، کراری.
**کره بین** (karabín) نر.م. کربین، کارابین، غربین پخوانی لوی خولی ټوپک.
**کره توب** (karatób) نر.م. ۱) کره والی، سوچه والی، نېره توب؛ ۲) و ګ. کره کتنه.
**کرهډ** (karhád) ص. نر.م. ج. ۱) ښېرازه، تروتازه، سمسور؛ ۲) خړوب؛ ۳) نر.م. دکیکر ونه.
**کره کتنه** (karákatána) ښځ.م. (هن.) نقد، انتقاد، نقد ګري، ادبي نقد، ربښتینی قضاوت، د نقد یا انتقاد فن؛
ادبي کره کتنه: وینا پېژندنه، د ادبي آثارو د ارزښت او قیمت پېژندنې او د هغو د شرحې او تفسیر څخه عبارت دی.
**کره کتونکی** (karákatúnkay) ص. نر.م. «کره کوونکی» ناقد، نقد کوونکی، انتقاد کوونکی کریتیک، ربښتینی قضاوت کوونکی.
**کره کول** (karakawál) مص. مت. ۱) سم و ناسم سره بېلول؛ ۲) انتقاد یا نقد کول، ادبي نقد کول، ربښتینی قضاوت کول.
**کرهنه** (karhána) ښځ.م. کر، کرنه، کرونده، کرکیله، کښت، زراعت.
**کره والا** (karawálá) ص. نر.م. بېلدار، بېل والا.
**کره والی** (karawálay) ص. کره توب، معیاریوالی، معیاریتوب.
**کرهه** (karhá) ښځ.م. کراهت؛ ۱) کرکه، نفرت؛ ۲) نه خوښېدنه.
**کرهېړ** (karhéṛ) نر.م. ج. کرېړ، شنکاړ، کاړ، سنګېړ، میده کاني.
**کره ییز**(۱) (kurayíz) نر.م. ج. و ګ. کروي.
**کره ییز**(۲) (karayíz) ص. نر.م. ج. د کره کولو، په کره کولو اړوند، د کره، په کره اړوند.
**کری** (karáy) ص. ښځ.م. ج ۱) توله، ګرده، تمامه، له میاشتې، اونۍ، شپې او ورځې سره کارېږي، لکه کرۍ میاشت، کرۍ ورځ؛ ۲) ښځ.م. کړۍ، حلقه؛ ۲) د سپلاو ختې چې وچه شوې او چاودلې وي؛ ۳) داوېدلو یو ډول لاسي آله ده.
**کری** (karáy) نر.م. ۱) یو ښکېن مرغه دی؛ ۲) خبر، پیغام؛ ۳) کوری، ترنګړ.
**کریاب** (karyáb) ص. نر.م. کریابه؛ ۱) اړ، محتاج؛ ۲) ځنډېدلی، معطل؛ ۳) بېکاره.
**کریابول** (karyābawál) مص. مت. ۱) اړ کول، محتاجول؛ ۲) ځنډول؛ ۳) بېکاره کول.
**کریابي** (karyābí) ص. نب. ۱) و ګ. کریابول؛ ۲) ښځ.م. اړه، احتیاج، ضرورتمندي.
**کریابېدل** (karyābedál) مص. ل. ۱) اړېدل، احتیاجېدل، ۲) ځنډېدل.
**کریانه** (karyāṇa) ښځ.م. ۱) چرچین سامان، د کارېدنې بېلابېل توکي؛ ۲) اوریښې، ساراپې وریښه.
**کرېب** (krcb) نر.م. د اس رکاب.

**کريپ** (krip) نر.م. يو ډول نازک، نفيس سونډی يا وريښمين ټوکر دی.

**کريتا** (kritā́) نر.م. پشورمه، تبرغان.

**کرېټ** (karḗṭ) نـر.م. د مـهـو يا ... د ساتنې او لېږدولو لرګين سوندخ.

**کرېټيسيزم** (kreṭisīzə̄m) نر.م. ۱) د قضاوت کولو او محاکمې عمل، ګوته نيونه؛ ۲) وګ. کره کتنه؛ ۳) د کـره کتـونکـي فـن، اصـول او مېتودونه.

**کريټيک** (kriṭík) ښځ. نر.م. ج. ۱) ګوته نيونه؛ ۲) وګ. کره کتونکی.

**کريچ** (krič́) نر.م. کرچ، کراچ، يو ډول توره ده چې تر توري نرۍ وي.

**کريچی** (kričáy) نر.م. ۱) يو ډول ترخه واښه دي چې واړه واړه ګلونه کوي؛ ۲) يـو ډول غـرنی بوټی دی؛ ۳) صوت. کـرچی، د غـابښـونـو د چيچلو اواز.

**کريږ** (karíź́) ص. نر.م. وګ. کرونده ګر.

**کرېډيټ** (kredíṭ) نر.م. کرېډټ؛ ۱) وګ. قـرض؛ ۲) اعتبار؛ ۳) د سرلوړتيا منبع.

**کرير** (krir) نر.م. تلکه، تلک، لټ.

**کرېړ** (karḗṛ) نر.م. ج. کاړ، کانې، جغل، يـو ډول کلکه سپينه تيږه ده.

**کريړ** (kriṛ) ښځ.م. کريږه، يوه غرنۍ ونه ده، لـرګی يې چغزي، اغزن او ژر ماتېدونکی دی.

**کرېړی**[1] (karéṛay) نر.م ۱) کـهـړی، مـاچـونګن، يوه حشره ده؛ ۲) يـو ډول وړوکـی مـارغـه دی؛ ۳) کـرايي، د ګوړې پخولو لويه کړايي.

**کرېړی**[2] (kreṛáy) نر.م. کک، ګاټه شربت، ټينګ شربت، ختنه شربت، د ګوړې ژاوله.

**کريړی** (kɪriṛáy) نر.م. يو ډول بوټی دی.

**کرېز**[1] (kurḗz) نـر.م. ۱) بنکې غورغونګ، د مرغانو د بنکو توييدو ناروغي؛ ۲) مرغانو ته آرام او دمه ورکول.

**کرېز**[2] (krez) نر.م. کرېږ، ځـهـږ، ځوړو، خيګ، د زخم پـهـړوی.

**کريزه** (kríza) ښځ.م. وګ. کريغه.

**کريږه** (kríza) ښځ.م. وګ. کريغه.

**کريستالين** (kristālín) ص. نـر.م. بلوري؛ ۱) له کريستل ځخه جوړ؛ ۲) روڼ، شفاف.

**کريستل** (kristā́l) نر.م. کـرستل، بلور، ډنګی، ۱) يو صاف او روڼ کوارتز؛ ۲) يوه خورا صافه او ځلېدونکې ښيښه.

**کريسمس** (krismā́s) نر.م. د حضرت عيسی (ع) د زېږېدو اختر چې مسيحيان يې د ډيسمبر په (۲۵ مه) شـپـه جـوړوي او مـذهبي اختـر ګڼل کېږي.

**کريشبا** (krišbā́) ښځ.م. ځولی، چانته، طبراق، شخولی.

**کريغه** (krīǵa) ښځ.م. (ج. کريغې) کريږه، کرړه، کريغه، کريکه، له ويرې ځخه په زوره چيغه.

**کرېکښ** (krekā́ṣ) ص. نر.م.ج. کراکش، کراکښ، کراوړونکی.

**کريکه** (kríka) ښځ. م. وګ. کريغه.

**کرېکی** (krekā́y) ښځ.م. جلته، له نړيو لښتو ځخه جوړ شوی کندو.

**کريکيټ** (krikíṭ) نـر.م. (لو.) د کريکيټ لوبه، يوه لوبه ده چې په ډنډه او ګېند سره اجرا کېږي.

**کرېله** (karelā́) ښځ.م. کرېړه، د توري په ځېر د سبو يو بوټی دی. سابه يې ترخه او ژېړ رنګ لري.

**کرېلی** (kureláy) نر.م. واسکټ ډوله کـورتۍ ده چې لستوڼي نه لري.

**کریم**(۱) (krim) جن. ۱) د شیدو سر؛ ۲) خوږ رازه خواږه چې له کریمو څخه جوړېږي – آیس کریم.

**کریم**(۲) (karím) ص. نر. م ۱) بخښونکی؛ ۲) سخي، ځوانمرده؛ ۳) د پاک خدای(ج) یو صفت دی.

**کرېمن** (kremán) ص. نر. م. ج. نمجن، نمناک، زېمناک، زېمجن، کرېړمن، مرطوب.

**کریمي** (krimí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ژېړ ویره سپین، ژېړ ډوله سپین، د کریمو رنګ.

**کرېن** (kren) نر. م. (ج. کرینونه) شاول، جرثقیل، د درندو بارونو د کښته او پورته کولو ماشین.

**کریه** (kəryá) ښځ. م ۱) پیغام؛ ۲) حکم؛ ۳) هدایت ٤) سپارښت.

**کړ** (kaṛ) نر. م. ۱) کړاو، ربړ؛ ۲) نشایسته؛ ۳) الکړ، کنګر، کانګر؛ ٤) د ډېوال د رغېدلو غېږ؛ ۵) ف. (ګر.) فعلي ریښه ده چې کول ورځخه جوړېږي؛ ٦) وګ. سلوک.

**کړا** (kaṛā́) ښځ. م. د زړک اواز.

**کړاپ** (kaṛā́p) ص. نر. م. ج. زوړ، خوار او کمزوری غویی.

**کړاپی** (kṛā́pay) نر. م. لږه فاصله، لنډ مزل.

**کړاچه** (kṛā́čá) وګ. کړاڅی.

**کړاڅی** (kṛā́cay) نر. م. کړاچه، کړاچی، نابالغه هلک، هغه هلکی چې مرانې نه وي وهلي.

**کړاسکه** (kṛā́ska) ص. نر. م. ج. جګ، ډنګ او لوړ ځوان.

**کړاسو** (kṛāsū́) ص. نب. ۱) غونج، ګونجې، جینګ، زوړ، ګونځې؛ ۲) وروست، پوده.

**کړاغ**(۱) (kṛāğ) ص. نر. م. ج. ۱) کمزوری، خوار، ناتوانه؛ ۲) نر. م. وګ. کارګه.

**کړاغ**(۲) (kuṛā́ğ) ص. نر. م. ږدی، بټ سترګی، بق، سترګی، چغر سترګی.

**کړاغتیا** (kṛāğtyā́) ښځ. م. کړاغندتوب، کمزورتیا، کړاغندتیا، خوارېدنه، ضعف، ضعیفي.

**کړاغند** (kṛā́ğənd) ص. نر. م. ج. ۱) ډېر کمزوری، ضعیف، ټاپ ټیپ؛ ۲) پوده، وروسته.

**کړاغندول** (kṛāğəndawə́l) مص. مت. کمزوری کول؛ ورستول.

**کړاغندېدل** (kṛāğəndedə́l) مص. ل. ۱) کمزوری کېدل ضعیفېدل؛ ۲) ورستېدل.

**کړاک**(۱) (kaṛā́k) نر. م. کړاو، تکلیف، ربړ، کړېدنه، ځورېدنه.

**کړاک**(۲) (kṛā́k) نر. م. د نخودو په اندازه غونډ شی یا غونډاری.

**کړان** (kaṛā́n) نر. م. کړاو، ربړ، زحمت، تکلیف.

**کړاند** (kaṛā́nad) ص. نر. م. ۱) لالهانده، سرګردان؛ ۲) خوابدی، غمجن؛ ۲) پرېشان.

**کړانکیچ** (kṛānkíč) نر. م. کاکیشکی، کاکیچکی، کلکوډنډه، یوه لوبه ده.

**کړانګی** (kṛā́ngay) ص. نر. م. بینګا، چیک، چپ سترګی، کرینګا، کوږ سترګی.

**کړانوې** (kṛā́nawe) ښځ. م. کوچنۍ زینه ډوله وسیله ده چې څلور پښې لري.

**کړاو**(۱) (kaṛā́w) نر. م. (ج. کړاوونه) کړ، کړاک، ربړ، کړان، زحمت.

**کړاو**(۲) (kṛā́w) نر. م. ۱) ورزش، تمرین؛ ۲) عمل.

**کړاوو** (kaṛāwū́) ص. نر. م. ۱) کړاوی، زیارکښ، زحمت کښه؛ ۲) څوک چې ډېر کړېږي.

**کړاوه** (kaṛāwá) ښځ. م (ج. کړاوې) کناوه، کرمه، یو ډول پاپوښه ده چې له لرګي څخه یې جوړوي.

**کړاوي** (kaṛāwí) ص. نب. ۱) کړاوو، زیارکښه؛ ۲) ژړندوکی، هغه کوچنی چې ډېر ژاړي.

**کړای** (kṛāy) ف. د تېرې زماني استمراري فعل دی.

**کړايي** (karạ̄yí) ښځ. م. کړی، لوی فلزي لوښی دی چې ځیني خواړه په کې سره کوي.

**کړبابو** (kaṛbābó) ښځ. م. يو ډول مرغی ده.

**کړبو** (kaṛbū́) ص. نر. م. ج. سپي داړلی.

**کړبه** (kaṛába) ښځ. م. د جوارو تانته.

**کړبېزن** (kaṛbezán) ص. نر. م. کربیزن، کرمېزن، کتبېزن، هغه حیوان چې تر خولې او پوزې يې ګیازې او اوبه راځي.

**کړبېزي** (kaṛbezí) ښځ. م. کرمبېزي، کربېزي، ګیازې.

**کړبیکه** (kaṛbíka) ښځ. م موتی، د بيوې موتی، موتانه؛ د کولبې موتی.

**کړپ** (kṛáp) صوت. نر. م (ج. کړپونه) ۱) د کلک شي دغورځېدلو اواز؛ ۲) ق. نابېره، ناڅاپه.

**کړپا** (kṛapā́) صوت. ښځ. م. کړپهار، کړپار، کړپها، کړپی، د قدمونو پرله پسې اوازونه.

**کړپړ** (kaṛpáṛ) صوت. نر. م. ۱) ګډې وډې خبرې؛ ۲) کړاری، دکلکو شیانو د غورځېدلو اواز.

**کړپند** (kṛapánd) ص. نر. م ۱) کړپندوکی، کړپنده، بې ځایه ړغېدونکی؛ ۲) تیږې لرونکې لاره.

**کړپندوکی** (kaṛpandū́kay) نر. م. کرپندوکی، نرم هډوکی، کړپندی، ککرکی، غضروف.

**کړپنده** (kṛapánda) ص. نب. ۱) کاږېږ، لاره، له تیږو ډکه لاره؛ ۲) ښځ. م. یوه غرنۍ ونه ده.

**کړپندی** (kṛapandáy) نر. م. و ګ. کړپندوکی.

**کړپوز** (kaṛpū́z) نر. م. کتبېزی، د خولې کوری، د ښاروپو پوزکی.

**کړپ و کړوپ** (kṛápūkrū́p) نر. م. ۱) څوږ، غورېږ، شور؛ ۲) د لوښو د سره لګېدلو اواز.

**کړپول** (kṛapawə́l) مص. مت. ۱) لوښي او... سره جنګول او اواز څني ایستل؛ ۲) مص. ل. په چا بې ځایه او بې واکه چتې خبرې کول.

**کړپه** (kṛapá) ښځ. م. ۱) کړپی، ناهواره لاره؛ ۲) مج. بندېز.

**کړپهار** (kṛapahā́r) نر. م. صوت. ۱) د لوښو یا... د جنګېدلو اواز؛ ۲) کړپا، کړپی.

**کړپی** (kṛapáy) نر. م ۱) کړپهار؛ ۲) بې ځایه خبرې کول.

**کړپۍ** (kṛapáy) ښځ. م. کړپنده لاره، کړه وړه او کړپه لاره چې په غره یا دښته کې وي.

**کړپېدل** (kṛapedə́l) مص. ل. ۱) لوښي یا تیږې... یو له بله سره لګېدل؛ ۲) بې ځایه ړغېدل.

**کړت** (۱) (kurát) صوت. نر. م. کړتهار، کړت کړت، کوړت کوړت، د کوړکې چرګې اواز.

**کړت** (۲) (kṛat) نر. م. قړت، یو توری، یو تکی، یوه کلیمه.

**کړتکی** (kaṛtákay) نر. م. داسې څپلۍ چې یو تلی او یو وندنی (بند) ولري.

**کړتن** (kṛátan) ص. نر. م. ج. قړتو، قړتن، کړپال، کړتو.

**کړتنه** (kṛátaná) ص. ښځ. م. و ګ. کړتن.

**کړته** (kṛáta) ښځ. م. خوږ مجلس، خوږې خبرې کول.

**کړتې** (kṛáte) ښځ. م. عبث خبرې، بې ځایه خبرې، چتې خبرې.

**کړتېدل** (kṛatedəl) مص. ل. قړتېدل، کړتې کول، ډېرې او بې ځایه خبرې کول.

**کړچ** (kṛač) صوت: نر. م. ۱) د دوو کلکو شیانو د سره لګېدلو اواز؛ ۲) د توپک لټ وهنه.

**کړچا** (kṛačā́) صوت. ښځ. م. کړچهار، کړچی؛ د اوسپنیزو یا لرګینو شیانو سره لګېدلو اواز.

**کړچول** (kṛačawə́l) مص. مت. ۱) غاښونه چیچل، د غاښو کرنجول؛ ۲) د توپک لټ وهل.

کړچېدل (kṛačedә́l) مص. ل. د غاښو کړنجېدل، د غاښو کرچېدل، د تو پک لټ وهل.

کړځ (kṛaǰ́) نر.م. پجه، بتېس، کوره، داښ، داش، د خاورينو لوښو پخولو داښ.

کړڅو (kaṛcū́) نر.م. کړڅی، کړچس، کړسو، کړڅو، ارکاره، هرکاره.

کړڅی (kaṛcáy) نر.م. ۱) کړنډی، کاچوغه؛ ۲) وګ. کړڅو؛ ۳) په «يوازينۍ پښتو» کې د «روغن داغ» په مانا راغلی دی.

کړخه (kaṛә́xa) ښځ.م. ۱) ژوره، کنده؛ ۲) دغره يا غونډۍ په خواکې کنډو کپر څمکه.

کړدود (kaṛdod) ګر. د فعل خبري او انشايي وجه.

کړده (kaṛdá) ښځ.م. ۱) کرده، عمل؛ ۲) جوله، څېره، اندام؛ ۳) بندوبست، نظم، انتظام.

کړړی (kiṛṛáy) نر.م. وګ. کريړی (۱).

کړز (kṛәz) نر.م. کمزوري او خوارځاروی.

کړس (kṛas) صوت. نر.م. ۱) ټس، د کلک شي د ماتېدو اواز؛ ۲) نر.م. څوړ، شور، غالمغال.

کړسا (kṛasā́) صوت. ښځ.م. کړسهار؛ دلرګي يا بل کلک شي د پرله پسې ماتېدو اواز.

کړساو (kṛasā́w) ص. نر.م.ج. کړساغ، کړواس، جګ سری چې مخ يې اوږد وي.

کړسپ (kaṛsáp) نر.م. قصابي شوی، بوټۍ بوټۍ.

کړستاينوم (kaṛstā́ynūm) ګر. فعلي صفت، هغه ستاينوم چې له فعل څخه رغېدلی وي.

کړسند (kṛasә́nd) نر.م. ۱) وګ. کروسند؛ ۲) سرمغزن.

کړسول (kṛasawә́l) مص. مت. ۱) په ځپېړو وهل، ټکول؛ ۲) په خبرو سره څورول.

کړسېدل (kṛasedә́l) مص. ل. ۱) په ځپېړو سره وهل کېدل؛ ۲) په ډېرو خبرو سره څورېدل.

کړشب (kaṛšáb) نر.م. ناره، ناو؛ د دوو غرونو يا غونډيو ترمنځ ژور ځای.

کړشپ (kaṛšáp) ص. نر.م. وګ. کړشوپ.

کړشوپ (kaṛšū́p) ص. نر.م.ج. کړشپ، شوپ، غاښ وتلی، کړشوپی، غاښ لوېدلی.

کړشوپه خوله (kaṛšū́paxwlә́) ښځ.م. بې غاښو خوله، کړشپه خوله، شوپه خوله، ښپه خوله.

کړښت (kaṛaṣt) کړاو، کړېدنه، درد.

کړغ (kṛәǵ) ص. نر.م. کړاغ، کمزوری، ضعيف.

کړغېچ (kaṛǵéč) ص.نر.م.ج. ۱) تلولی، وارخطا، پرېشانه؛ ۲) مراوی، زمول، شيته.

کړک (kṛәk) نر.م. ۱) دورمه، نی، کړکی؛ ۲) ص. نر.م. خوار، ډنګر؛ ۳) نر.م. کړېکی، له لښتو يا دورمو څخه جوړ شوی کنډو؛ ٤) ګيبړکه، عکګه.

کړکاچ (kaṛkā́č) نر.م. ۱) کړکېچ، خړنج، جنجال، کج بحثي؛ ۲) چنې وهنه.

کړکاچي (kaṛkā́či) ص.نب. ۱) کړکېچن، کج بحثه، کړکاچ کوونکی؛ ۲) چنه وهونکی.

کړکچو (kaṛkacṓ) نر.م. څوړ، شور، غالمغال.

کړکيچو (kaṛkicṓ) ص. نر.م. ۱) خوځېدونکی، کرچند، ړچند؛ ۲) مج. خوار، کمزوری.

کړکړی (kәṛkәṛáy) نر.م. ۱) د ښاخڅه د اوبو را ايستلو څرخ؛ ۲) د بېړۍ د تناو څرخ؛ ۳) د ماشومانو يو ه لوبه ده؛ ٤) يوه لرګينه کړی ده چې پکې کلکېږي او د ښاروي په غاړه کې ددې لپاره اچول کېږي چې د زوروهلو په وخت کې پرې د ښاروي مرۍ ته پرهنوځي او ساه يې ورېنده نه کړي.

کړکندی (kaṛkundáy) نر.م. ترخه هندوانه.

کړکومه (kaṛkū́ma) ښځ.م. کړکيمه؛ ۱) د مرغانو نيولو آله؛ ۲) قفس، پنجره.

کړکه (kářka) ښځ.م. شرغشی، یو ډول وابښه دي، له وچو ښخه بلی او د بامو ښندلی هم جوړوي.

کړکی (۱) (kəṛkǎy) ښځ.م. ۱) دریڅه، دریچه، روزن؛ ۲) ورسی، کنکی.

کړکی (۲) (kaṛakǎy) ښځ.م ۱) کیبی، کوین، ترښځ ته‌ورته آله ده چې بوټي پرې راباسي؛ ۲) یو ډول غټ گونځې گونځې کمیس دی.

کړکی (۳) (kṛəkǎy) ښځ.م. د کاریز تاوکښ، د کاریزه کړلیچی.

کړکی (kaṛkǎy) نر.م. ۱) دورمه، نی (قلم)؛ ۲) د چلم نل؛ ۳) کنکی، د اورلگیت خلی.

کړکیته (kaṛkíta) ښځ.م. د مارغانو نیولو لټ.

کړکیچ (kaṛkéč) نر.م. و.گ. کړکاچ.

کړکیچن (kaṛkečə́n) ص.نر.م ۱) و.گ. کړکاچی؛ ۲) پېچلی، کالکوچن، مغلق.

کړکیچو (kaṛkečó) ص.نب.نر.ښځ.م.ج. ترتری، گرگری، نیم ژبی.

کړکیچ والی (kaṛkečwā́lay) نر.م. پېچلتیا، مغلقتوب، مشکلوالی.

کړکیمه (kaṛkíma) ښځ.م. و.گ. کړکومه.

کړکین (kaṛkín) نر.م. سپنسي، تاري، نخي.

کړکی وړکی (kaṛǝ́kaywǎṛkay) ص. نر.م. نتلی، غمجن، پرېشانه، غمگین.

کړگس (kaṛgǎs) نر.م. کړگسه، رمبی، چاری، د گوړي لرلو لويه ښمځی.

کړل (kṛəl) مص. مت. ۱) کول؛ ۲) د پیدا کول، خلق کول، پنځول، په مانا مکمل فعل دی.

کړم (kaṛám) ص. نر.م. ۱) لړم وهلی، لړم چیچلی؛ ۲) دردېدلی، غم ځپلی؛ ۳) نسوخ، پسرې، کت؛ ۴) ژوبل؛ ۵) جنجالي او بد معامله سړی.

کړمبو (kaṛambáw) نر.م. سرپوبس لرونکې توکری ده چې له مزرو ښخه جوړېږي.

کړمتوب (kaṛamtób) نر.م. کړموالی، ۱) دلړم چیچنه؛ ۲) غم، مصیبت؛ ۳) غوڅوالی؛ ۴) بدمعامله گي.

کړمچه (kaṛmáča) ښځ.م. وره خمچه، د لاس کچه گوته.

کړمځی (kaṛamcáy) نر.م. روستاری، جلیغ، د خره تانگ، د خره تانگی، د خره ښوړ.

کړمن (kaṛamán) ص.نر.م ۱) کړېدلی، ځورېدلی؛ ۲) مج. خپه، خوابدی.

کړمنتوب (kaṛamantób) نر.م. کړمنوالی، خپه والی، خوابدی.

کړمنول (kaṛamanawál) مص. مت. کړمن کول؛ ۱) ځورول، کړول؛ ۲) خپه کول، غمجنول.

کړمنېدل (kaṛamanedə́l) مص. ل. ۱) ځورېدل؛ ۲) خپه کېدل، خوابدی کېدل، دردېدل.

کړمول (kaṛamawál) مص. مت. ۱) لړم چیچل؛ ۲) خپه کول، دردول؛ ۳) داړل.

کړمه (kářma) ص. ښځ.م. مېروښه، هغه ښځه چې مېره لري.

کړمیازه (kaṛmyáza) ښځ.م. گیازه، قرمیازه، هغه اوبه او مایعات چې دښاروبو له خولو بهېږي.

کړمېدل (kaṛəmedə́l) مص. ل ۱) چیچل کېدل؛ ۲) غمجنېدل؛ ۳) غوڅېدل؛ ۴) بدمعامله کېدل.

کړمېزن (kaṛmezə́n) ص. نر.م.ج. کرېېزن، کرمیزن، قنبا، کنبا، کرویزن، گرنگن.

کړمېزي (kaṛmézi) جن. رېبز، کرنگ، قنبي، د خولې او پوزې مایعات.

کړن (kṛan) نر.م. چار، چاره، عمل، کار، کړنه، کړ.

کړنج (kṛanj) صوت. نر.م. په کوم لوښي کې د ووړ دروند شي د اچولو اواز.

کړنجا (kṛanjā́) صوت. ښځ.م. کړنجي، کړنجها، کړنجاري، کړنجهار، کړنچهار.

کړند (۱) (kṛənd) ص. نر.م.ج. تکړه، کاریګر، فعال، کارکوونکی، کارند.

کړند (۲) (karə́nd) ص. نر.م. ۱) لالهانده، کړېدلی؛ ۲) ړقند، سست؛ ۳) بې پروا، بې اعتنا؛ ٤) آزاد او بې خنده.

کړندپېر (kṛandper) ګر. فاعلي حالت.

کړندتوب (karəndtób) نر.م. کړندوالی ۱) لالهاندي سرګرداني؛ ۲) ړقندوالی؛ ۳) بې خنده.

کړندول (karəndawə́l) مص. مت. ۱) لالهانده کول، سرګردانه کول؛ ۲) سستول، ړقول(لق).

کړندر (karandár) نر.م. ګړندر، شمېر، شمار، حساب.

کړنده (karindá) ښځ.م. کړنده؛ ۱) سپینه سرېښناکه ماده ده چې د لنګون پر وخت د څاروي له فرج څخه راووځي؛ ۲) سپینه سرېښناکه ماده چې د پېچ او اسهال پر وخت خارجېږي.

کړندېدل (karəndedə́l) مص. ل. ۱) لالهانده کېدل، سرګردانه کېدل؛ ۲) سستېدل، ړق کېدل.

کړنګ (kṛang) نر.م ۱) و.ګ. کړن؛ ۲) د دریږي غږ؛ ۲) نر.م. یو لرګی دی چې د څاروي غاړې ته یې وراچوي؛ ۳) و.ګ. کړینګ.

کړنګا (kṛangā́) صوت. ښځ.م. کړنګی، کړنګار، کړنګهار؛ د فلزي شیانو د لګېدلو اواز.

کړنګوالی (kṛangwalay) نر.م. و.ګ. کړینګوالی.

کړنګول (۱) (kṛangā́wəl) مص. مت. فلزونه یو له بله سره جنګول او اواز ترې را ایستل.

کړنګول (۲) (kṛingawə́l) مص. مت. و.ګ. کړینګول.

کړنګه (kṛánga) ص. ښځ.م. کړکه، کوړکه، هغه چرګه چې هګۍ یې بس کړې وي.

کړنګه څله (kṛángacəlá) ښځ.م. سخته څله، د ژمي د څلې زیات او سخت ساړه.

کړنګی (kṛingáy) نر.م. و.ګ. کړینګ.

کړنګېدل (kṛangedə́l) مص. ل. له فلزي شیانو سره جنګېدل او اواز څخې پورته کېدل.

کړنلاره (kṛanlā́ra) ښځ.م. تګ لیاره، پروګرام، خط مشي، دستورالعمل.

کړنوږ (kṛ nuẓ) د کړ جنس، د فعل جنس.

کړنوم (karnum) فعلي نوم، له فعل څخه رغېدلی نوم.

کړنه (kṛə́na) ښځ.م. ۱) عمل، کردار؛ ۲) کول، کوونګ.

کړو (karū́) نر.م. کړي، لاونډ، لاوړ، تودې شړومبې.

کړواس (karwā́s) ص. نر.م. و.ګ. کړساو.

کړوال (karwā́l) د کړ اړوند، کړیز، پر فعل اړوند.

کړواله غونډله (karwā́lağondlá) فعلي غونډله، فعلي جمله.

کړوب (krōb) نر.م. کړوبی، کنوبی، پساو، پاتې شونې شوروا چې غوړ و نه لري.

کړوپ (krūp) ص. نر.م.ج. ۱) کوپی، شاتیتی، تیتها؛ ۲) کنډوکپر، چخپیت؛ ۳) کوږ، منحني.

کړوپتوب (krūptób) نر.م ۱) کړوپتیا، کړوپوالی ۲) کنډوکپروالی؛ ۳) کوږوالی، انحنا.

کړوپول (krūpawə́l) مص. مت. ۱) ملاتیتول، شاتیتول؛ ۲) کنډوکپرول؛ ۳) کږول.

کړوپه (krūpá) ښځ.م ۱) ډوغل، کنده؛ ۲) دکجوري د ونې په تنه کې خندان.

کړوپېدل (krūpedə́l) مص. ل. ۱) کوپېدل، په ملا تیتېدل؛ ۲) چیتېدل؛ ۳) کږېدل، منحني کېدل.

کړوپیښ (krūpíṣ) نر.م. کړپش، کته پیښ، ترینګی.

کړوتی (kaṛwatáy) ښځ.م. یو ډول گیاه ده.

کړوچ (kṛuč) نر.م. ۱) خندق؛ کنده؛ ۲) کمر.

کړوس (kṛūs) نر.م. کړس، د لرگي د ماتېدو اواز.

کړوستي (kṛōstí) نر.ج. کړیس، ښکری، کړېږ، پلی، د مشنگو یا نورو حبوباتو پلی.

کړوسند (kṛawsə́nd) نر.م. و گ. کروسند.

کړوسی (kaṛwasáy) نر.م. (ج. کړوسي) د زوی یا لور لمسی، د لمسي زوی.

کړول (karawə́l) مص. مت. ۱) څورول، زحمت ورکول؛ ۲) الېل، وریتول، په اور کبابول.

کړومبه (kṛombá) ښځ.م. ۱) کړومبې، اوبلنې مستې؛ ۲) د مستو اوچکې اوبه؛ ۳) مج. یخه پخه او بې غوړو ښوروا.

کړومبی (kṛombáy) نر.م. ۱) د کړومبه مصغر؛ ۲) پېتاو، د لوخو یا مزور وړه سرپوښ لرونکي توکری.

کړومبې (kṛombé) جن. کړومبه، نری او اوبلنې مستې.

کړون (kṛūn) نر.م. و گ. کړن.

کړونچ (kṛunč) صوت. نر. م. و گ. کورنچ.

کړونکی (kṛúnkay) نر.م. کړونی، کارکوونکی، فاعل.

کړونگی (kṛúngay) نر.م. کړونگه، څروبی، زاوه.

کړونگه (karongá) ښځ.م. سپېره زېمنه، سپېره ښوروا.

کړونگی (kṛúngay) نر.م. ۱) و گ. کړونکی؛ ۲) غوري ډوله خاورین لوښی.

کړونه (karawə́na) ښځ.م. ۱) کړونگ، څورونه، په کړاو اخته کول؛ ۲) وریتونه، کبابونه.

کړوه (kaṛwá) ښځ.م. ټوټه، توکری، رنجه، پارچه.

کړوهول (kṛohawə́l) مص.مت.و گ. گروهول

کړوه کړوه (kaṛwakáṛwá) ص. ښځ.م. ق. ټوټه ټوټه، تکه تکه، پارچه پارچه.

کړوېزن (kaṛwezə́n) ص. نر.م. و گ. کړمېزن.

کړوی (kaṛwə́y) ښځ.م. وړه شکری، وړنکی، شکور، وړه شکری.

کړه (۱) (kṛa) ف. ۱) کړل، کول، کړ؛ ۲) عمل، فعل؛ ۲) ښځ.م. جوله، ځېره، بنه.

کړه (۲) (kaṛá) ښځ.م. ۱) کسره، هغه گانه چې د بنگړي په څېر وي؛ ۲) کړی، الغه، حلقه؛ ۳) صوت. . کړې، کشې، د چرگ د شړلو اواز.

کړه (۳) (kúṛa) ښځ.م. یو ډول ژېړ رنگې مرغۍ ده.

کړهار (kaṛahár) صوت. نر.م. ۱) د چرگې کړتا، ۲) د تیږو یا د خښتو د دېوال د رغړېدلو اواز.

کړهاند (kaṛahánd) ص. نر.م. ج. لالهانده، سرگردان، په کړاو اخته.

کړه وړه (kṛáwṛá) نر.ج. ۱) جوله، ځېره، بنه؛ ۲) عمل، کردار، فعل، خوی او خصلت.

کړهی (۱) (kaṛaháy) نر.م. کړایي، کړی.

کړهی (۲) (kuṛháy) نر.م. اوړی، وړی، د غلې د اندازه کولو تاکلې پیمانه.

کړی (kaṛə́y) ښځ.م. (ج. کړیانې) ۱) الغه، حلقه، کړی لرونکی: (بیا.) حلقوي چینجیان، اینلېډ، اني لیډا؛ ۲) اته، د تارونو کلاوه؛ ۳) مج. زولنه، زولانه؛ ۴) لړی، سلسله.

کړي (kaṛí) ښځ.م. و گ. کړو.

کړی (káṛay) ۱) مفعولي صفت کړې، کړلی، اجرا کړی؛ د قریبي ماضي صیغه ده - کار یې کړی دی؛ ۲) نر.م. کړایي، کړهي؛ ۳) هغه خواړه چې په کړایي کې پاخه شوي وي.

کړې (káṛe) ښځ.م. کړه، کشې، د چرگ د شړلو اواز.

**کړیت** (krit) نر.م وګ. کرت (۲).

**کړیچی** (kṛičáy) ښځ.م. کړیڅی، تورنکه، کویله، تورانکه، غرنۍ بلبله.

**کړیڅ** (kṛic) نر.م. کړیسکی، کړیڅی، کوړیڅی، د ښارویو د اینې یو ډول چینجی دی.

**کړیڅکه** (kṛicaká) ښځ.م. یو ډول سور رنګی نبات دی، پلنې پاڼې لري.

**کړیڅن** (kṛicán) ص.نر.م.ج. کوړیڅی، کړیسن، د اینې د چینجي لرلو په ناروغۍ اخته ښاروی.

**کړېڅی** (kṛecáy) ښځ.م. ۱) وګ. تورانۍ؛ ۲) وګ. کړیڅ.

**کړېڅی** (kaṛecáy) نر.م. ۱) لوبه خمڅی؛ ۲) کړڅو، کبری، ارکاره، کرچی.

**کړېدل** (kaṛedә́l) مص.ل. ۱) څورېدل، په کړاو اخته کېدل؛ ۲) د یوه کار د اجرا په تمه د چا شا وخوا ته ګرځېدل؛ ۳) وریتېدل، کبابېدل؛ ٤) کوټ کوټ کول (چرګې)؛ ٥) له پاسه ټیرېدل ارغړېدل.

**کړېر** (kṛeṛ) نر.م. کړېس، کړېسی، کړوستی، پلی، نیامک، د کورخې، میو او... پلی.

**کړېزن** (kṛezán) نر.م.ج. ناروغ ښاروی.

**کړېس** (kṛes) نر.م.وګ. کړوستی.

**کړېسکی** (kṛéskay) نر.م، وګ. کړیڅ.

**کړیسی** (kṛisáy) ښځ.م. وګ. کړستی.

**کړیغ** (kṛiğ) ص.نر.م.ج. کړیغ، کمزوری، ډنګر، خوار، بې غوښو.

**کړیغه** (kṛíğa) ښځ.م. کړیکه، کریغه، کروه، په زوره چیغه، تېزه چغه یا ناره.

**کړیکه** (kṛíka) ښځ.م ۱) درد، سوی، د خوږ و درد، تپ درد؛ ۲) وګ. کریغه.

**کړینده** (kṛinda) ص.ښځ.م. خواره (غوښه)، بې وازدې (غوښه)، ازبې غوښه.

**کړینګ** (kṛing) ص.نر.م.ج. کړنګ، کړینګی؛ ۱) هغه سری چې اوږې یې راوتلې وي؛ ۲) مج. کوږ ووږ سری؛ ۳) کړینګا، چپ سترګی.

**کړینګ پړینګ** (kṛingpṛíng) ص.نر.م.ج. ګورګوتې، ګاړګوتې، ګړکوتې.

**کړینګ والی** (kṛingwā́lay) نر.م. ۱) داوږو بوټوالی؛ ۲) د سري کږوالی؛ ۳) چغر والی.

**کړینګول** (kṛingawә́l) مص. مت. ۱) د اوږو راایستل، اوږې کږول؛ ۲) سترګې چپول.

**کړینګېدل** (kṛingedә́l) مص.ل. ۱) اوږې راوتل؛ ۲) سترګې کږېدل، سترګې چپېدل.

**کړې وړې** (kaṛewә́ṛe) ص.نب. ترسره شوی، اجراء، اجرا شوی.

**کړیې** (kaṛyé) ښځ.م.ج. د څرخې منږمنې چې خپلې وړې و وریښې، خپل ټول څرخې سره ټول کړي نو د یوه څرخې د سنې یو سر په خپل یوه لاس کې نیسي بیا یوازې سنې پر لاس رااړوي او کښته یې ابله کوي چې درې څرخې پر دغه وره سنې پر بل لاس باندې رااړوي. او چې لاس یې له سنیو څخه ډک شي، نو ښځې وایي چې دغه نو یوه کړیې شوه.

**کزلاخ** (kazalā́x) نر.م. قزلاق، جل، بررا، یو ډول مرغۍ ده چې ښه ږېږ کوي.

**کږبل** (kažbә́l) نر.م. بور، پرانګ.

**کږ** (kaẓ) نر.م. د ژامې هډوکی، ډزنې هډوکی.

**کږتیا** (kaẓtyā́) ښځ.م. کوږوالی، کږوالی، انحنا.

**کږدلی** (kaẓdalā́y) ښځ.م. د غنې یا جولاګي ځاله.

**کږدی** (kaẓdә́y) ښځ.م. کېږدۍ، د کوچیانو خېمه، له وژغنو څخه جوړه شوې کېږدۍ.

**کږښانګه** (kaẓṣā́nga) ښځ.م. د ګېند ډنډه، د توپ لرګی، چوګان.

کږکه (kaẓaka) ښځ. م. ۱) کښشکره، کاغی، وروغ، وراغ؛ ۲) غربی، گربی، غربا.

کږکی (kaẓákay) نر. م ۱) هغه هډوکی چې د پسه له راشپېله سره نښتی وي؛ ۲) کانتیه، دشولو یوه ناروغي ده چې وږی او دانې یې توربېږي.

کږل (kaẓə́l) مص. مت. له پامه بد راتلل، له نظره بد راتلل، سپېره گڼل، بد گڼل، په بدو نیول.

کږلړمی (kaẓlaṛmáy) نر. م. د خامک یو ډول گنډون دی.

کږلکه (kaẓláka) ښځ. م. گزلکه، چړوکی.

کږلېچ (kaẓléč) نر. م. کږلېچي، گولایي، ورسک، گوټ پېر.

کږلېچی (kaẓléčay) ص. نرم. کوږ ښنگلی، هغه سړی چې ښنگلی او لېچې یې کږې وي.

کږندی (kaẓandáy) ص. نر. م ۱) ضعیف، کمزوری ۲) څوک چې کږې خبرې کوي.

کږوالی (kaẓwā́lay) نر. م. کوږوالی، انحنا، د سموالي ضد.

کږوبی (kaẓubay) ص. نر. م. ۱) مراوی، زمل، خپه؛ ۲) عیبي، عیبناک، عیبجن.

کږول (kaẓawə́l) مص. مت. کوږول، انحنا ورکول؛ د سمول ضد.

کږوه (kaẓáwa) ښځ. م. کوږوالی، اوښتنه.

کږویلنی (kaẓwelā́nay) نر. م. کاږه ویلنی، کاږه یلنی، بادیان.

کږه (kaẓá) ښځ. م. ۱) د کوږ (یو څناور) ښځه؛ ۲) ص. ښځ. م د کوږ مؤنث؛ ۳) وگ. کږه خبره؛ ٤) ښځ. م (پ. ک) غلطي پربکړې ته کږه وایي.

کږه خبره (kaẓáxabará) ښځ. م. پ. ک. په جرگه او مرکه کې چېه خبره یا هغه خبره چې بې دلیله ویله شوې وي او ضمناً د جرگې او د دعوې د مقابل طرف بې احترامي په کې وي.

کږه لیکه (kaẓálika) ښځ. م. منحنی کرښه، کږه کرښه، منحني خط، انحنا لرونکې کرښه.

کږېدل (kaẓedə́l) مص. ل. ۱) کوږ کېدل، منحني کېدل؛ ۲) له لارې چپېدل.

کس (kas) نر. م. (ج. کسان، کسه) ۱) تن، څوک، سړی، شخص، فرد؛ ۲) ناله، اگل، هلی.

کسات (kasā́t) نر. م. (ج. کساتونه) بدل، پور، سوز، بدله، انتقام.

کساد (kasā́d) ص. نر. م. ج. ۱) تروټه، کوټه، بې رواجه؛ ۲) اق. د کسب وکار د فعالیتو د انحطاط یوه دوره چې بیې کمې او بېکاري زیاته وي؛ ۳) بې رونقه.

کسالت (kasālát) سستي، تمبلي، کهالي.

کسب (۱) (k(ı,a)sb) نر. م. کار، شغل، چاره، پېشه، حرفه.

کسب (۲) (kasb) نر. م ۱) ترلاسه کونه، حاصلونه؛ ۲) سره راټولونه؛ ۳) روزي لټونه؛ ٤) رو. د زده کړې له لارې زده شوی.

کسبت (kısbát) نر. م. کسوت ۱) ډوبگی، د نایانو د څرمني بکس چې د خپل ضرورت ورشیان په کې ږدي؛ ۲) ډډی، د توپک د دارو کڅوره.

کسبگر (kasbgə́r) ص. نر. م. ج. کسبه؛ د کسب خاوند، کسبي، کاسب، د یوه شغل څښتن.

کسبول (kasbawə́l) مص. مت. ۱) لاسته راوړل، حاصلول؛ ۲) رو. د زده کړې له لارې یو څه زده کول؛ ۳) سره راټولول؛ ٤) رزق لټول.

کسبه (kasabá) نر. ج. د کاسب جمع. وگ. کسبگر.

کسبي (kasbí) ص. نب. نر ښځ. م. ۱) وگ. کسبگر؛ ۲) د راټولونې؛ ٤) هر هغه څه چې د زده کړې له لارې زده کېږي؛ ۵) په کسب اړ...

**کست** (kast) نر.م.قست؛ ۱)بغض، کینه، عناد؛ ۲) رخه؛ ۳)عزم، نیت، د قصد مفغن.

**کستره** (kastará) ښځ.م.کستیری، کستیر، کشتره؛ یو ډول نبات دی، گل یې سپین دی.

**کست ناک** (kastnák) ص. نر.م. کست ناکی، کست کوونکی، رخه لرونکی، حاسد.

**کستوره** (kastūrá) ښځ.م. یو ډول بې هډوکو سمندري حیوان دی.

**کستوري** (kastorí) جن. ۱)مشک، نافه؛ ۲)ښځ.م. د موسیقۍ یو بسیط مقام دی، اته سُره لري او بې ږغه دی.

**کستیج** (kastíj) نر.م. د پرتوگ درز یا چاک.

**کستیر** (kastír) نر.م. و گ. کستره.

**کستیری** (kastiráy) نر.م. و گ. کستره.

**کسچیچونکی** (kasčičúnkay) نر.م. یوه خزنده ده، خلک چیچي، په اوبو کې اوسي.

**کسر** (kásar) نر.م(ج.کسرونه) ۱)ماتېدنه، ماتوالی، ماته؛ ۲)عیب، نقص؛ ۳)کمښت؛ ٤)و گ. کسره؛ ٥) اد. د شعر مقطع، د شعر مطلع؛ ٦)ری. ترصحیح واحد لږ عدد، لکه ۱/۲ نیم.

**کسرت** (kasrát) نر.م. بدني روزنه، سپورټ، ورزش.

**کسرمن** (kasarmán) ص. نر. م. ج. کسري؛ ۱)معیوب؛ ۲) زیانمن، تاواني.

**کسره** (kasrá) ښځ.م.کسر، زېر، د حروفو له حرکتو څخه یو حرکت دی.

**کسرۍ** (kasráy) ښځ.م. شکرۍ، کشرۍ.

**کسري** (kasrí) ص.نب. نر. ښځ.م.ج. ۱)مات؛ ۲)کسر په کې واقع شوی؛ ۳)په کسر اړوند، کسر لرونکی؛

**کسکر** (kaskár) نر.م. ۱)متېکوري شولې، پټ او پوټکي لرونکې شولې؛ ۲) ص.نر.م.ج. توټه توټه؛ ۲)سوی، وریت؛ ۳) وچه او کلکه ډوډۍ؛ ٤)تباه او برباد، ورک.

**کسکرول** (kaskarawә́l) مص.مت ۱) توټه توټه کول؛ ۲) وریتول؛ ۳) وچول؛ ٤)تباه کول.

**کسکرېدل** (kaskaredә́l) مص. ل. ۱) توټه توټه کېدل؛ ۲) بربادېدل؛ ۳)وچېدل؛ ٤)وریتېدل.

**کسل** (۱) (ksә́l) مص.ل. کتل، لیدل.

**کسل** (۲) (kasál) ص. نر.م.ج. ناراسته، سست پست، غړند، مړ پړ، کاهل.

**کسنه** (ksә́na) ښځ.م. لیدنه، کتنه.

**کسوت** (kәswát) نر.م. و گ. کسبت.

**کسور** (kasúr) نر.م. ۱) قصور، کوتایي، گناه، تقصیر؛ ۲) بدل، بدله، انتقام، پور.

**کسوري** (kasūrí) ص. نب. ۱) عاجز، خوار، بې وزله؛ ۲) زیانمن، عیبي، نقصاني.

**کسوف** (kusúf) نر.م. تندره، د لمر تندره، د لمر تندر، د لمر تندرنیونه، لمرنیونگ.

**کسی** (kә́say) نر.م(ج. کسي) ۱)دسترگو تور، باتوره، باتور، د سترگو ککی.

**کسیا** (kasyá) ښځ.م. ۱)گرد، گرد، دوړه، باد؛ ۲) ذره، خخوسکی، میده گي.

**کسیټ** (kәsíṭ) نر.م. کیسټ؛ ۱)فیته، د ټیپ ریکارډر فیته؛ ۲)دجواهرو دساتلو سندوخچه.

**کسیره** (kasirá) ښځ.م. د یوې پخوانۍ سکې نوم دی چې ډېره لږه بیه یې درلوده.

**کسیز** (kasíz) ص.نر.م.ج. د کسو، دافرادو د کسانو.

**کش** (kaš) نر.م ۱)جنجال، مزاحمت؛ ۲)ص. نر.م. کنبن، راښکونه، ښکولی، رابنکلی، کش شوی؛ ۳)صوت. نر.م. کشې، د مرغیو شړلو اواز؛ ٤)نر.م. (تن.) و گ. ډېش؛ ٥) وهنه، وهنگ؛ ٦) دوام، ادامه.

**کشاف** (kašā́f) ص. نر.م. ج ۱) کشف کوونکی، ښکاره کوونکی، اوڅاروونکی، موندونکی؛ ۲) څرې، استازی.

**کشافي** (kašāfī́) ښځ.م. کشفونه، موندنه، برملا کونګ، لوڅونه، پيدا کول.

**کشاله** (kašālá) ښځ.م ۱) لانجه، جنجال، کړکېچ؛ ۲) مج. ستونزه، مشکل.

**کشب** (kıšáb) نر.م. و ګ. کيشپ.

**کش پش** (kašpaš) نر.م. ۱) زړه نازړه کارکول، تذبذب، تردد؛ ۲) کښې، د پښو خفيف حرکت.

**کشت**[1] (kašt) ص. نر.م. ج. ۱) له نظره وتلی؛ ۳) وروستی، وروستنی.

**کښت**[2] (kıšt) نر.م. د شطرنج په لوبه کې د مقابل لوري پاچا ته خپل ګوټ سره خبرتيا.

**کشتره** (kaštrá) ښځ.م. و ګ. کستره.

**کشتری** (kaštráy) ښځ.م. شکری، وړوکی او ژور شکور چې له لوخو يې جوړ وي.

**کشتم** (kaštám) نر.م. ۱) کستم، ګمرکي محصول ؛ ۲) دګمرکي محصول دراټولولو اداره.

**کشتوړې** (kıšt(o,ū)ṛáy) ښځ.م. وړه کښتی، کوچنۍ بېړۍ، کمکۍ کشتۍ.

**کشته**[1] (kıštá) ښځ. م. اشاري، مسولی، کښته، کيښته؛ وچ زردالو.

**کشته**[2] (kuštá) ښځ.م. په پخواني طب کې د احراق په نامه يوه عمليه وه چې د ځينو شيانو طبي طبيعت اړوي، د هغو تېزي يې لړوله، قوت يې کماوه، زهريت يې له منځه وړ او...

**کشتۍ** (kıštáy) ښځ.م. ج. و ګ. کښتۍ.

**کشتي** (kıští) ښځ.م. يو ډول ژور غوری دی چې ننګولی په کې اچوي.

**کشتيوان** (kıštiwán) نر.م. و ګ. کښتيوان.

**کشر** (kášər) ص.نر.م. (ج. کشران) په سن (عمر) کې تر بل چا کم، د مشر مقابل.

**کشرتوب** (kašartób) نر.م. کشرتيا، کشروالی، کمکي توب، د سن د لږوالي حالت.

**کشروټی** (kašróṭay) نر.م. ۱) د کشر مصغر؛ ۲) ډېر کشر، تر ټولو کشر.

**کشروکی** (kašrū́kay) نر.م. د کشرۍ مصغر، وړه شکری، وړوکی شکور.

**کشری**[1] (kašaráy) ص. نر.م ۱) کمکی، کوچنی، تر ټولو کوچنی؛ ۲)

**کشری**[2] (kašráy) نر.م. ۱) لويه تو کری؛ ۲) داوړو لندولو او کورت زدوولو لوښی.

**کشرۍ** (kašráy) ښځ.م. ۱) کشره، د کشر مؤنث؛ ۲) شکری، کشترۍ.

**کشرين** (kašrín) ص. نر.م. ډېر کشری، ډېر کوچنی، ډېر وړوکی، تر ټولو وړوکی.

**کشړوپ** (kašṛū́p) نر.م. ج. و ګ. کړشوپ.

**کشش** (kašíš) نر.م. کښښ؛ جاذبه، د کشولو قوه يا عمل، دجاذبې قوه.

**کشف** (kašf) نر.م ۱) موندنه، معلومونه، لوڅونه، ښکاره کونګ، څرګندونه؛ ۲) عس. په محاربه کې د غليم په اړه د هغوی د اراضي معلومات ترلاسه کول.

**کشفول** (kašfawә́l) مص. مت ۱) موندل، لوڅول، څرګندول، جوتول؛ ۲) عس. د غليم او مطلوبو ځمکو په اړه معلومات ترلاسه کول؛ ۳) پلټل، سپړل.

**کشفېدل** (kašfedә́l) مص. ل. ۱) موندل کېدل، څرګندېدل؛ ۲) عس. دغليم او مطلوبو ځمکو په اړه معلومات ترلاسه کېدل؛ ۳) پلټنا کېدل.

**کشک**[1] (kušk) نر.م. و ګ. کوشک.

**کشک** (۲) (kašík) ص. نر. م. څوکیدار، چوکیدار، د کلي یا د یوه ځای ساتونکی.

**کشک** (۳) (kašák) نر. م. هغه ربړي مزی چې کشېږي او پرتاګه ته یې وراچوي.

**کشکاب** (kaškā́b) نر. م. اوړوب، کشکاو، د بتهو لیتي، روز، د اوربشو د اوړو اتوب.

**کشکارل** (kəškārə́l) مص. مت. چوچو کول، ښکارل، نسی کول، دتکارل.

**کشک چي** (kašıkčí) ص. نر. م. څوکیدار، چوکیدار، د کلي او بازار ساتونکی.

**کشکره** (kəškára) ښځ. م. کرغچکه، کیشکره، ګیرکه، ګوبی، رېږی، یوه مرغۍ ده.

**کشکل** (kaškál) ص. نر. م. پک، ګنجی.

**کشکودل** (kaškodə́l) مص. مت. کشول، راښکل.

**کشکوره** (kaškū́ra) ښځ. م. یو ډول برګه، توره او سپینه چیچونکې خزنده ده.

**کشکې** (kā́ške) ند. کاشکې، کشکې، کاش، افسوس، ارمان.

**کشمالو** (kašmālū́) نر. م. ببری، کشمالی، ریحان، څوکه (و ګ. ریحان۱).

**کشمش** (kıšmíš) نر. م. ج. ممیز، وڅکې؛ وچ کړي انګور.

**کشمش خونه** (kıšmısxūná) ښځ. م. وښکوځی، وښکخونه، هغه خونه چې ممیز په کې وچوي.

**کشمشي** (kıšmısí) نر. ج. ۱) یو ډول انګور دي چې ممیز تري جوړوي؛ ۲) ص. نب. نر. ښځ. م. د کشمشو په څېر.

**کشمکش** (kašmakā́š) نر. م ۱) لانجه، کړکېچ، جنجال؛ ۲) ځکول راځکول، وهل ټکول.

**کشمیره** (kašmirá) ښځ. م. (ج. کشمیري) وړین یاسپنسین توکر دي چې ډول ډول رنګونه لري.

**کشمیری** (kašmiráy) نر. م. ۱) یو ډول ګل دی؛ ۲) ص. نر. م. کشمیر ته منسوب، په کشمیر کې جوړ شوی.

**کشنده** (kušandá) ص. نب. ۱) مهلک، وژونکی، له خطره ډک؛ ۲) ق. ک. ښځ. م. د نورو له منځه د یوه قاتل په ګوته کول، چې په بدل کې ووژل شي.

**کشو** (kašū́) نر. م. د مشنګو پلی چې له دانو سره یو ځای په اوبو کې وخوټول شي.

**کشور** (۱) (kašū́r) نر. م. مورچه خورکه، یوه مرغۍ ده، اوږده ژبه لري او مېږیان خوري، مېږي خوره؛ ۲) یو چینجی دی چې وېښتان لري.

**کشور** (۲) (kıšwā́r) نر. م. ۱) هېواد، وطن، اېواد، مملکت؛ ۲) سیمه، لته.

**کش وکړپ** (kašukrā́p) نر. م. کش وکوش؛ ۱) کشمکش، جنجال؛ ۲) د پښو د حرکت اواز.

**کشول** (kašawə́l) مص. مت. ۱) راښکل، کش کول، کشکودل، ځکول؛ ۲) مج. څوک په تحقیر له ځانه سره بوول؛ ۳) اوږدول، زیاتول.

**کشه** (kā́ša) صوت. ښځ. م. کیشه، کیشې، کړې، د مرغانو او چرګانو د شړلو اواز.

**کشهار** (kəšahā́r) ص نر. م. و ګ. کنبهار.

**کشی** (kašáy) ښځ. م ۱) د اوسپنې توته؛ ۲) کودالې، کودالی، ینګه، کوچنی تسکوره، کوبین.

**کشی** (kašáy) نر. م. ۱) د مور و پلار یکی یو زوی؛ ۲) ښی، کخی؛ د ورشو او یا د فصل ساتونکی.

**کشې** (kā́še) صوت. ښځ. م. کیشه، کشه، کړې، د چرګ یا مرغیو د شړلو اواز.

**کشېدل** (kašedə́l) مص. ل. ۱) ځکېدل، راښکل کېدل؛ ۲) اوږدېدل؛ ۳) په تحقیر بیول کېدل.

**کشیده** (kašidá) ښځ. م. و ګ. کنبیده.

کښ (۱) (kaṣ) صوت. نر.م. ۱) د یوه شي د حرکت خفیف اواز؛ ۲) نر.م. ست، سلا؛ ۳) د پسونو خارښت؛ ٤) نری لاره، روګی؛ ٥) خاپ، پل؛ ٦) یو وروستاړی دی چې له اسمه صفت او بل اسم جوړوي-خواریکښ.

کښ (۱) (kıṣ) اد. کښې، کې.

کښاند (kəṣánd) نر.م. ۱) خاپ، پر ځمکه باندې د یوه شي د راښکلو نښه؛ ۲) مشوش، پرېشانه؛ ۳) کښونکی، راکښونکی.

کښانده (kaṣánda) ص. نب. مشوش، پرېشانه، وسواسي، په تشویش کې.

کښایل (kuṣāyál) مص.مت ۱) خلاصول، پرانیستل ۲) مج. روژه ماتول.

کښت (kəṣt) نر.م. ۱) کر، کرونده، کرهنه، فصل؛ ۲) کیشت، قسط، و ګ. قسط ٥)؛ ۳) ورسک، کړلېچ، ګولایي، توکښ، د غره کړلېچي.

کښتګر (kaṣtgár) ص. نر.م. بزګر، دهقان.

کښتل (kaṣtál) مص.مت. ننه ایستل، ننه ویستل.

کښتنی (kṣatanáy) ص.نر.م. لاندېنی، کورتنی، کوزنی، د پورتني ضد.

کښته (kəṣtá) ښځ.م ۱) و ګ. کښت ۱)؛ ۲) و ګ. کشته (۱)؛ ۳) ق. ښکته؛ ٤) کوز، لاندې، ټیټ؛ ٥) ص. نب. مغلوب؛ ٦) پست.

کښته توب (kṣatatób) نر.م. ښکته توب، ۱) ټیټوالی، کښته والی؛ ۲) تنزل، مغلوبیت.

کښته کېده (kṣatakedá) نر.ج. ښکته کېده؛ ۱) ټیټېده، کوزېده؛ ۲) مغلوبېده.

کښتۍ (kaṣtə́y) ښځ.م. بېړۍ، کشتۍ، د ورو او راورو یوه وسیله ده چې د اوبو پر سر ځي.

کښتي (kaṣtí) ص.نب. د کښت، زراعتي، د زراعت کښتیزه.

کښتیوان (kaṣt(i,əy)wán) ص.نر.م. مانو، بېړۍ چلوونکی، مانګی.

کښښ (káṣaṣ) نر.م. و ګ. کشش.

کښکر (kaṣkár) ص.نر.م ۱) وچ کلک؛ ۲) ښکر، کښکرکی، هغه ځمکه چې ډېره کلکه وي.

کښکری (kaṣkáray) نر.م. ۱) د صابون رشمه، یوه چکۍ صابون؛ ۲) ززغولی، چزغولی؛ ۳) و ګ. کښکر.

کښکوله (kaṣkóla) ښځ.م. د شرابو پیاله.

کښکولی (kaṣkólay) نر.م. توقه، شوقله، کوشکلې، پړچوخې، پټونه، د جوار د وړي پوستکی.

کښکی (kəṣkáy) نر.م ۱) له یوه شي اواز ایستنه؛ ۲) معتدل کال.

کښکۍ (۱) (kəṣkə́y) ښځ.م. زهر بوټی، یو زهرجن نبات دی.

کښکۍ (۲) (kaṣakə́y) ښځ.م. کښنده، ماته ګوډه، ګډه وډه (لکه کښکۍ پښتو) پښتو.

کښکیلی (kaṣkeláy) ښځ.م. څوښکوری، چوښکوری، چوښتی، چوښکی، څوښکی.

کښل (۱) (kṣəl) مص.مت ۱) ښکل، ایستل، باسل، ویستل، کاږل؛ ۲) لیکل؛ ۳) رسمول.

کښل (۲) (kṣul) نر.م ۱) توښح؛ ۲) و ګ. ښکل.

کښلول (kṣulawál) مص.مت. ۱) و ګ. ښکلول ۲) توښح کول.

کښندری (kaṣandáray) نر.م ۱) کښه، کښوندری، کوږ لرګی دی چې د بار تړلو پر مهال د واښ په سر کې تړل کېږي او بار ورباندې کلکوي؛ ۲) موږی؛ هغه لرګی چې ښاروي پرې تړي.

کښندی (kəṣandáy) نر.م. ۱) بزګر، کروندګر، کښتګر؛ ۲) ښوندی، ښوینډی، یخمالک.

**کښنه** (kṣána) ښځ. م. کښنګ؛ ۱) ایستنه، باسنه؛ ۲) لیکنه؛ ۳) رسم یا انځور ایستنه.

**کښوایل** (kṣwāyə́l) مص. مت. فتح غوښتل.

**کښول** (kaṣawə́l) مص. مت. ۱) یو شی پر بل شي مښل او اواز ترې ایستل؛ ۲) ښکول، راښکل.

**کښوندۍ** (kaṣwandə́y) ښځ. م. کوښه، د پېرې هغه سرچې د بار ترلو دکاره لرګي (کښندري) سره ترل کېږي او بیا پرې بار ترې.

**کښوندی** (kaṣwandə́y) نر. م. د کېږدۍ کوږ لرګی چې د کېږدۍ پرې ورپورې ترې.

**کښونکی** (kṣū́nkay) نر. م. ۱) راکشوونکی، راښکونکی؛ ۲) ص. محرر، لیکونکی.

**کښه**[1] (kə́ṣa) ښځ. م. ۱) کښندری، د بار ترلود پرې په سرکې دوه ښاخی لرګی؛ ۲) دوښاخه، ذ لښتې لاستی یا دوه ښاخی.

**کښه**[2] (kaṣá) ښځ. م ۱) ورین ترنګر؛ ۲) کښندری؛ ۳) کیله، کیل، کرک.

**کښهار** (kṣahā́r) صوت. نر. م. کشهار، کښهارۍ، د یوه شي د راښکلو او کشولو اواز.

**کښی** (kaṣáy) نر. م. ۱) د اوبود راوستلو او ساتلو مؤظف اجیر؛ ۲) د فصل یا ورشو ساتندوی؛ ۳) کښت ته اوبه ورکوونکی کروندګر.

**کښې** (kṣe) اد. ۱) کې، کښ؛ ۲) ق. د کښې له خوا، له کښته لوري؛ ۳) نر. م. نازل، وربدلی؛ ٤) ق. دننه، داخل.

**کښې ایستل** (kṣeistə́l) مص. مت. کښېیستل؛ ۱) اخته کول، مبتلاکول؛ ۲) په غم او جنجال اړول؛ ۳) ننه ایستل؛ ٤) راکښته کول.

**کښېباسل** (kṣebāsə́l) مص. مت. و ګ. کښې ایستل.

**کښېتوب** (kṣetób) نر. م. ۱) کښېوتنه، کېوتنه؛ اخته کېدنه؛ ۲) راځلېدنه؛ ۳) راکښته والی.

**کښېختل** (kṣexatə́l) مص. مت. ۱) شرمېدل، خړېدل؛ ۲) نښتېدل؛ ۳) کېمنډل، کښېکښل.

**کښیده** (kaṣidá) ښځ. م. کشیده؛ ۱) نقش و نګار، نقش کاري، ګل دوزي، ۲) خامک کاري.

**کښیده ګر** (kaṣidagár) ص. نر. م. ج. ۱) کښیده ایستونکی، نخش و نګار کوونکی؛ ۲) خامک کوونکی.

**کښېښودل** (kṣeṣodə́l) مص. مت. کښېښوول، اېښودل، اېښوول، کېښودل.

**کښېښوول** (kṣeṣowə́l) مص. مت. کښېښول، کښېښودل، اېښودل، اېښول، ږدل، کېښودل.

**کښېکښل** (kṣekṣə́l) مص. مت. کېمنډل، کښېمنډل؛ ۱) تخته کول؛ ۲) چاپي کول.

**کښېمنډل** (kṣemandə́l) مص. مت. و ګ. کښېکښل.

**کښېناستل** (kṣenāstə́l) مص. مت. و ګ. کښېنستل.

**کښېنستل** (kṣenastə́l) مص. مت کښېناستل، کښاستل؛ ۱) کوناتو ته د ځمکې سره تماس ورکول؛ ۲) کښته کېدل؛ ۳) تل ته رسېدل.

**کښېننی** (kṣenanáy) نر. م. و ګ. کښېنی.

**کښېنول** (kṣenawə́l) مص. مت. ۱) کېنول؛ ۲) کښته کول؛ ۳) ته نشینه کول؛ ٤) نصبول؛ ۸) ایسارول؛ ۹) سپرول؛ ۱۰) ارامول (بغاوت).

**کښېنی** (kṣenáy) ص. نر. م. کښېننی، کښتنی، ښکتنی، کوزنی، لرنی.

**کښېواته** (kṣewātá) نر. ج. ۱) اخته کېده، ګېرېده؛ ۲) په غم اخته کېده؛ ۳) ننه ایسته.

**کښېوتل** (kṣewatə́l) مص. ل. ۱) اخته کېدل، ګېرېدل؛ ۲) په جنجال اخته کېدل؛ ۳) کوزېدل، راکښته کېدل؛ ٤) بوختېدل، لګیا کېدل.

**کښېور** (kṣewə́r) نر. م. کرونکی، بزګر، دهقان.

**کښېيستل** (kṣey(a,ı)stál) مص. مت. وګ. کښې ايستل.
**کغ** (kaǧ) صوت. نر.م. تغ، چرګ يا بله مرغۍ چې له مرۍ ونيولى شي، د کغ اواز يې له خولې وځي.
**کغاچ** (kaǧáč) ص. نر.م ۱) مخالف سړى؛ ۲) درې ګوتيزه؛ ۳) ناسم، کوږ؛ ٤) مج. غلط سړى.
**کغاچتوب** (kaǧačtób) نر.م. ۱) کغاچي، کږتيا، کغاچوالى؛ ۲) غلطوالى؛ ۳) مخالفت.
**کغاچول** (kaǧačawə́l) مص. مت. کغاچ کول؛ ۱) کږول؛ ۲) مخالفول؛ ۳) غلطي کول.
**کغاچي** (kaǧačí) ښځ.م. ۱) وګ. کغاچتوب؛ ۲) ص. نر.م.ج. جنجالي، غلط، لانجه مار.
**کغر** (kaǧár) ص. نر.م. وګ. چغر.
**کغن** (kaǧə́n) ص. نر.م. کغند، کغنده؛ هغه څوک يا مرغۍ چې مرۍ يې کغهارى کوي، ژرن.
**کغند** (kaǧənd) نر.م. ۱) وګ. کغن؛ ۲) زانه، زانې، زانيه،؛ (وګ. زانې).
**کغنده** (káǧandə) ص. نب. وګ. کغن.
**کغول** (kaǧawə́l) مص. مت. تغول، تغهارى ترې ايستل.
**کغهار** (kaǧahár) صوت. نر.م. کغا، کغکى، د چرګ يا بل مرغه پر له پسې تغهار.
**کغېدل** (kaǧedə́l) مص. ل. کغارى کول، تغېدل، کغهار کول، کغکى کول.
**کف** (kuf) نر.م. چوف، چُف، دم، کوپ.
**کفارت** (kafārát) نر.م. کفاره، بدله، تووغ؛ په لغت کې د پټولو په مانا دى او په شرعه کې د جنايت بدل ورکول دي.
**کفاره** (kafārá) ښځ.. وګ. کفارت.
**کفاف** (kafā́f) نر.م. ۱) هغه اندازه روزي چې انسان ته بس وي؛ ۲) کفايت، بسيا، بسنه.
**کفالت** (kafālát) نر.م. ۱) دچا کفيل کېدل، دچا ضامن کېدل، واکدار کېدنه؛ ۲) ضمانت.
**کفائت** (kafāát) نر.م. کفو کېدل، مساوات، سيال کېدل، يو ډول کېدنه، کفاء؛ يو شرعي دستور دى چې د نکاح په وخت اعتبار ورکول کېږي.
**کفايت** (kıfāyát) نر.م. ۱) بسوالى، بسېدنه، پوره کېدنه، بسيا، بسنه؛ ۲) قابليت، اهليت.
**کفايي** (kıfāyí) ص. نب. کفائي، کفايه، د واجب ضد.
**کفتان** (kıftā́n) ص. نر.م. وګ. کپتان.
**کفچه مار** (kafčámār) نر.م. يو ډول مار دى چې سر يې پلن او د څمڅۍ په څېر دى.
**کفر** (kúf(ə)r) نر.م. ۱) ناشکري، بې سپاسي؛ ۲) د ايمان نقيض، بې ديني، الحاد.
**کفران** (kufrā́n) نر.م. ۱) ناشکري، بې سپاسي؛ ۲) بې ايماني.
**کفسچه** (kafasčá) ښځ.م. قفسچه، کوچنى کپس، وړوکى قفس، کمکى پنجره.
**کفن** (kafán) نر.م. هغه کالي چې مړى په کې پېچل کېږي او له مړي سره خاورو ته سپارل کېږي.
**کفو** (kūfwə) نر.م. ج. سيال، د يوه نسبه، د يوه جنسه، مثل، نظير، همتا.
**کفيل** (kafíl) ص. نر.م. (ج. کفيلان) ۱) کفالت کوونکى، ضامن؛ ۲) څوک چې د يوې وزارت يا موسسې اداره په لاس کې اخلي؛ ۳) د تصفيې مامور.
**کک** (kak) نر.م. ۱) خلى، لخنى، ذره؛ ۲) لړ څيز؛ ۳) کرېړى، دګوړې ژاوله؛ ٤) يو ډول مرغۍ ده.
**ککاو** (kakā́w) ښځ.م. کاکاو؛ د تودو سيمو يوه ونه ده، د لرګي رنګ يې سور دى، د دانو رنګ يې په پخېدو سره ژېړ يا سور کېږي.

ککر (kakár) نر.م. کړی، دومبکی، کیکار، د مچیو منګوټ، تمبکه، د مچیو ځاله، شکرګنې.

ککره [1] (kakára) ښځ.م. ککری، کوپړی، د سر پاسنی برخه.

ککره [1] (kakára) ښځ.م. غټ لرګي چې د ویالې له پاسه د پورې وتلو لپاره ایښودل شوی وي.

ککرۍ [1] (kakaráy) ښځ.م. ۱) ککره، کوپړی؛ ۲) مج. سر؛ ۳) څوکه، ورسک، پیزه.

ککرۍ [2] (kakráy) ښځ.م. د مشانې تیږه، د مشانې ګیتۍ.

ککړ (kakáṛ) ص. نر.م.ج. ۱) لړلی، لبت پیت؛ ۲) مج. فسادي، شیطان؛ ۳) ناولی، چټل.

ککړتوب (kakaṛtób) نر.م ۱) ککړتیا، ککړوالی، چټلوالی؛ ۲) شیطاني، فساد.

ککړول (kakaṛawə́l) مص.مت. ۱) لړل، لیت پیت کول؛ ۲) چټلول؛ ۳) اخته کول، په غم اړول.

ککړه (kakáṛa) ښځ.م. (ج. ککړې) چکړې، چکړه، د زرکې یا چرګې اواز یا ناره.

ککړېدل (kakaṛedə́l) مص.ل. ۱) لړل کېدل، لیت پیت کېدل؛ ۲) چټلېدل؛ ۳) اخته کېدل، مبتلا کېدل، په جنجال اوښتل.

ککښ (kakáṣ) نر.م. پخی، د کوټې د پوښښ چڼ، وسکې، لاړي.

کک لیدونی (kaklidúnay) نر.م.و ګ. ذره بین.

ککنکی (kakánkáy) نر.م. یوه مرغۍ ده چې دېره ګرندۍ الوځي.

ککو (kakáw) ښځ.م.، جن. و ګ. ککاو.

ککوبۍ (kakobáy) جن. د ګلابو ځوښه، د ګلابو اوبه.

ککوری [1] (kakóray) نر.م. کوم کولالي لوښی دی.

ککوری [2] (kakóray) نر.م. ۱) ټیکلی، کولچه؛ ۲) څکی، ټیکله؛ ۳) و ګ. ریکاټ.

ککوری [3] (kakū́ray) ص.نر.م. ککړی، ځوانی ته رسېدلی.

ککوړي (kakóṛi) ښځ.م. د مېږې یا وزې د لګنېدو شیریني چې چاته په زیږي کې ورکول کېږي.

ککوی [1] (kakū́y) نر.م. ګوډی چرګ، پینکی، ملاچرګک، پوپوګک، توتوپښن.

ککوی [2] (kakə́wáy) نر.م. تیو تیوکه، بابوجان، بګلی، تتاری، یوه مرغۍ ده.

ککی (kákay) نر.م. ۱) دبرکوچنی ماشوم؛ ۲) یو دول چکن دوزي (ګنډون) ده.

ککۍ (kakáy) ښځ.م. ۱) د سترګو تور، د سترګو کسی؛ ۲) مشرې ښځې ته وایي.

کل [1] (kal) نر.م. جن. و ګ. کونجاړه.

کل [2] (kul) ص.نر.م.ج. ق. ۱) ټول، ګرده، ګرد، تمام، غونډ؛ ۲) مجموعه؛ ۳) عموم.

کلا (kalā́) ښځ.م ۱) قلعه، قلا، حصن، جګ حصار ۲) کور، مېنه؛ ۳) (مو.) ماتره، ماترا یا د تال واحدونه؛ هغه څه چې د یوه لګ سره برابر وي او اندازه یې د یوه جوړ انسان د نبض د یوه سکون او حرکت سره سمه وي.

کلابند (kalabánd) ص.نر.م.ج. قلابند، محصور، ایسار، قلعه بند، محاصره.

کلابندېدل (kalābandedə́l) مص.ل. کلابند کېدل، ایسارېدل.

کلاچه (kalā̄čá) ښځ.م. قلعچه؛ بانډه، کوټکی، چمبر، د کلا مصغر.

کلار (kalā́r) ص. نر.م.ج. ق. و ګ. کرار.

کلارنټ (klārnáṭ) نر.م. مو. کلیرنیټ، د یوې اوږدې سورنا په شکل د موسیقي یوه آله ده.

**کلاسیک** (klāsík) ص. نـر. م. ج. لـرغـوني، پخواني، اولني، قديم، تاريخي.
کلاسیکه موسيقي (مو.) : لرغوني موسيقي يا د لرغونو اساسونو سره سمه جوړه شوې نوې موسيقي.

**کلاسیکي** (klasikí) ص. نب. نـر. ښځ.م. ج. کلاسیک، کلاسيکل؛ ۱) لـرغـوني، پخواني، اولني؛ ۲) ستر، ډېر عالي؛ ۳) اصيل، اصلي.

**کلاغي** (kalāǧí) نر.م. کلغی، سربند، سرترونی، سرپېچک.

**کلا کلا** (kalā́kalā́) ښ.م. د کـوچنیـانو د سپښتو يو راز لوبه ده.

**کلال** (kulā́l) ص.نر.م. څوک چې خاورين لوښي جوړوي.

**کلالي** (kulālí) ښځ.م. ۱) د کـلال کسب يا شغل؛ ۲) ص.نب. په کلال اړوند؛ ۲) کلال جوړکړی.

**کلام** (kalā́m) نر.م. ۱) خبره، قـول؛ ۲) هغـه جملـه چې له مسند او مسند اليه څخه ترکيبه شي او مانا وښندي؛ ۳) اشعار؛ ٤) پوښتنه او ګروېږنه.

**کلان** (klā́n) نـر.م. کلين، د نسبي خپلوۍ يوه اولنۍ واحد دی چې غړي يې په يـوه اساطيـري انا يا نيکه پورې تړلي وي.

**کلانتر** (kalāntár) ص. نـر.م. ۱) تـر ټولو لـوی؛ ۲) مشر، د يوې سيمې مشر او ساتونکی؛ ۳) په هرخېل کې چې د قبيلوي پېښو د حل وفصل لپاره يو مشر ټاکل کېږي، هغه ته کلانتر وايي.

**کلانکار** (kalānkā́r) ص.نر.م.ج. ۱) لوی چاری، مغرور، کبرجن؛ ۲) کاشواز.

**کلاوتي** (kalā́wati) نر.ښځ.م. يو ډول راګ دی.

**کلاوسن** (klāwsín) نر.م. (مو.) د موسيقۍ يوه آله ده. له کليو (کلی، پرده لکه د ارمونيې) يا کي بورډ لرونکو آلو څخه ګڼل کېږي.

**کلاوه** (kalāwá) ص. نب. ۱) وريت، کباب شوی، تلېدلی؛ ۲) ښځ.م. اټه، اتۍ، ماشله، ماشوره، ډنداره، دتارو ګونجې.

**کلاويکورډ** (klawikórd) نر.م. دموسيقۍ تاريزه آله ده چې کليو يې (د ارمـونيې په څېر پردې) يا کي بورډ لري.

**کلاين** (kalā́yin) ښځ.م. کلايي، شينشوب، رنګ شوی، په اويو سره ورېجې له شګو څخه پاکونه.

**کلايي** (kalā́yi) ښځ.م. و ګ. کلاين.

**کلب** (۱) (kalb) ص. نر.م. ج. ۱) قلب، کلپ، تګ؛ ۲) کوټه، کلپه، ناچله.

**کلب** (۲) (klab) نر.م.و ګ. کلوپ.

**کلبيون** (kalbıyū́n) نر.ج. و ګ. سينيک.

**کلپ** (۱) (kalp) ص.نر.م ۱) قلب، تګ؛ ۲) کوټه، ناچله؛ ۳) منافقه؛ ٤) مج. کلک، زبردست؛ ۵) ق. يوشدت بخښونکی قيد دی چې د زيات، سخت، مفرط ماناګانې لري.

**کلپ** (۲) (kulp) نر.م ۱) کولپ، جندره، قفل، قلف؛ ۲) ص.نر.م. کولپ شوی، قفل شوی، تړلی.

**کلپ** (۳) (klap) نر.م.و ګ. کلوپ.

**کلپکی** (kulpakáy) نر.م. کمکی کولپ، کوچنی کلپ، وړوکی قفل، ورکوټی قلف، وړه جندره.

**کلپول** (۱) (kulpawál) مص. مت. کـولپول، کلپ وراچول، کلپ کول، قفلول.

**کلپول** (۲) (kalpawál) مص. مـت. ناچـله کـول، قلبول، کوټه کول.

**کلپي** (kalpí) ښځ.م. دروه، تګي، چل، منافقت.

**کلپېدل** (۱) (kalpedál) مـص. ل. ۱) قلب کـېدل، ناچله کېدل؛ ۲) چل کول، منافق کېدل.

**کلپېدل** (۲) (kulpedál) مص.ل. کولپېدل، جندره کېدل، کلپ کېدل، بندېدل.

**کلت** (kulát) جن. د نسکو په شهر یو ډول حبوب دی چې پخوي یې.

**کلتور** (k(a,u)ltúr) نر.م. وگ. کولتور.

**کلتوري** (k(a,ū)ltūrí) ص.نب. نـر. ښځ.م.ج. وگ. کولتوري.

**کلچ** (klač) نر.م. د خاورو چلولو بوریا یاځولۍ چې له وریو یا له مزرو څخه جوړېږي.

**کلچ** (kalač) نر.م. په موټرا و ... کې د موټروان د پښو وکینې خواته یو پایډل دی.

**کلچر** (kalčár) نر.م. وگ. کولتور.

**کلچه** (kulčá) ښځ.م. وگ. کولچه.

**کلداره** (kaldára) ښځ.م. د هند او پاکستان پیسې چې پولي واحد یې روپۍ نومېږي.

**کلستر** (klastə́r) نر.م. که دوه یا زیات کانسونینتونه په یوه سېلاب کې متصل سره راشي او ددوی په منځ کې واول نه وي، کلستر یې بولي.

**کلغچکه** (kalğəčáka) ښځ.م. گولۍ، ډلۍ، گبۍ، کیشکره، کښکره، گیرکه، کرغچکه، گیژکه.

**کلغی** (kələğáy) نر.م. وگ. کلاغي.

**کلفک** (kulfák) نر.م. وگ. کولپک.

**کلک** (klak) ص. نـر.م.ج. ۱) مضبوط، ټینگ؛ ۲)غښتلی؛ ۳)ککړ؛ ٤)سره نښتي.

**کلک پلک** (klákplák) ص. نـر.م.ج. ۱)ډېر سخت، ډېرمضبوط؛ ۲) ډېر غښتلی.

**کلک تالو** (kláktālū́) نر.م. د تالو هغې برخې ته وایي چې که خوله پټه ونیوله شي او ژبه عادي حالت ولـري نو د ژبې د مخنۍ برخې په مقابل کې واقع وي.

**کلکتوب** (klaktób) نر.م. کلکي؛ ۱)کلکوالی، کلکتیا؛ ۲)مضبوطوالی؛ ۳)غښتلتوب؛ ٤)ممسکي، کنجوسي.

**کلک زړی** (klákzaṛay) سخت زړی، بې رحم، بې عاطفې.

**کلکسیون** (kolıksyū́n) نر.م. وگ. کولکسیون.

**کلکل** (kalkál) نر.م. کړکړ، شور، ځوږ، غالمغال، گنې خبرې.

**کلک واگی** (klakwā́gay) ص.نر.م. شقب آس، مست آس.

**کلکول** (klakawə́l) مص.مت ۱) سختول، ټینگول؛ ۲)پیاوړي کول؛ ۳)مقاومت ته چمتو کول؛ ٤)نصبول؛ ٥) تړل(ور).

**کلکېدل** (klakedə́l) مص. ل. ۱) سختېدل، ټینگېدل؛ ۲) قوي کېدل؛ ۳) مقاومت ته چمتو کېدل؛ ٤) په خپله خبره درېدل؛ ٥) نصبېدل.

**کلگی** (kaləgáy) نر.م. ۱) ککرۍ، کېنړی، ککره؛ ۲)د رخچینې سر، دسپکې خولۍ پاسنۍ برخه.

**کلل** (kalə́l) مص.مت. اندازه یاکچ اخیستنه؛ د شیانو ترمنځ اندازه یا واټن معلومونه.

**کللتوب** (kaləltób) نـر.م. اندازه اخیستنه، کچ اخیستنه، میچ اخیستنه.

**کللی** (kalə́lay) مف. نـر.م. اندازه شوی، میچ شوی، کچ شوی.

**کلماغ** (kalmā́ğ) ص. نر.م.ج. ۱)په ناز او نخرو تلونکی، خرامانه؛ ۲)په خوند خوند روان.

**کلمک** (kalamák) نر.م.ج. یو ډول سپین، نازک کندهاري انگور دي.

**کلمول** (kalamawə́l) مص.ل. قلمول؛ ۱)پرې کول، قطع کول؛ ۲)د ونو پیوندول.

**کلمه** (۱) (kulmá) ښځ.م. وگ. کولمه.

**کلمه** (۲) (kalamá) نر.م.ج، ښځ.م. قلمه.

**کلمېدل** (kalamedə́l) مص.ل. قلمېدل؛ ۱)پرې کېدل، قطع کېدل؛ ۲)پیوندېدل.

**کلن** (kalán) ور. کلنی؛ د کال یا کلونو؛ د یوه وروستاړي په توګه له عدد سره استعمالېږي.

**کلندری** (kalandráy) ښځ.م. یو خړ بوټی دی د ګل پر ځای غوټه کوي.

**کلنګ** [۱] (kāláng) نر.م (ج. کلنګونه) ۱) قلنګ، نغد نذر یا شکرانه؛ ۲) باج؛ ۳) کرداري، کرد؛ ۴) د ناوې جهیز؛ ۵) یو ډول لوبه ده.

**کلنګ** [۲] (kuláng) نر.م. (ج. کلنګونه) ۱) دوه سري تسکوره، کتی؛ ۲) زانه، یوه مرغۍ ده.

**کلنګي** (kulángai) ص.نب.نر.ښځ.م. ۱) جنګي اودنګ چرګ؛ ۲) مج. قوي او غټ سړی.

**کلنه** (kalána) ښځ.م. ۱) کلل، کږ کول، مېچول؛ ۲) د کلن مؤنثه بڼه.

**کلنی** (kalanáy) ص.نر.م. ۱) د کال، کالنی، د یوه کال؛ ۲) نر.م. یو کلن؛ ۳) ور. و ګ. کلن.

**کلنیک** (klınik) نر.م. و ګ. کلینیک.

**کلو** (kalū́) نر.م. تیغو، قلیشی، پړانګ مرغی، یوه مرغۍ ده، خلک یې غوښه نه خوري.

**کلواځه** (kalwā́ca) ښځ.م. پور، ساز، دین، هغه جنس یا پیسې چې د مقتول ورثه یې له قاتل څخه د قصاص په بدل کې اخلي.

**کلواړه** (kalwā́ṛa) ښځ.م. و ګ. کرواړه.

**کلوپ** (klūp) نر.م. کلپ؛ د راغونډېدو کوټه، هغه کوټه یا تعمیر چې د غونډو لپاره وي.

**کلوټ** [۱] (kalóṭ) ص.نر.م. توریخن، توروشمه، تور ویره.

**کلوټ** [۲] (kalwáṭ) نر.م. پولګی، پولکی، پلګی، هغه پلچک چې د سړک په اوږدو کې معمولاً ډېر جوړېږي.

**کلوټی** (kalótay) نر.م. کوچنی کلی، د لږو کورونو کلی، د کلي مصغر.

**کلوچ** (kluč) ص.نر.م. ۱) څڅېدلی، څڅېدلې دوډۍ؛ ۲) ګونځې ګونځې؛ ۳) غونج؛ ۴) کروپ (لکه فلز)؛ ۵) بدمخی، بدرنګه.

**کلوچول** (klūčawal) مص. مت. ۱) څڅول (لکه دوډۍ)؛ ۲) ګونجې ګونجې کول؛ ۳) غونجول؛ ۴) کروپول، چیتول؛ ۵) مخ په بدرنګ لړل.

**کلوچی** (kaločáy) نر.م. څرخه، څوښه، څوخه، د تارونو دوریشلو آله او څرخه.

**کلوچېدل** (klūčedál) مص.ل. ۱) څڅېدل (لکه دوډۍ)؛ ۲) ګونجې ګونجې کېدل؛ ۳) غونجېدل ۴) چیتېدل؛ ۵) بدمخی کېدل.

**کلوروفیل** (klorofíl) جن. کلوره فیل، د نباتاتو زرغونه او زموږ د ژوند د بقا یوه حیاتي ماده ده.

**کلوشه** (kaláwša) ښځ.م. (ج. کلوشې) کلوښه، یو ډول ربړي ګاوله ده چې په منځ کې د ټوکر پوښښ هم لري.

**کلوښته** (kloṣtá) ښځ.م. ۱) ګورګوټي، ګړګوټي، ویښته؛ ۲) ښېده، وچه رشکه؛ ۳) متروکه؛ ۴) هغه تارونه چې یو پړی ترې جوړېږي.

**کلول** [۱] (kalū́l) جن. مېچ، له وړو لوبیاو کوچنی تر مېو لږ غټ یو ډول حبوب دی د خوراک لپاره هم کارول کېږي او څارویو ته یې هم ورکوي.

**کلول** [۲] (kalawā́l) مص. مت. و ګ. خرول (۱).

**کلونکی** (kalū́nkay) فا.نر.م. کږ کوونکی، مېچ کوونکی.

**کلوله** (kulolá) ښځ.م ۱) غوټه، کوکړۍ، د تارونو وړوکی غونډاری؛ ۲) غونډاری.

**کلوو** (kalwū́) جن. و ګ. خوږ ویلنی.

**کله** (kála) ق. څه وخت، کوم مهال، کوم وخت، په کومه نښته.

**کله پنډی** (kalapanḍáy) ښځ.م. بغوټ، بغوټی، کلجرک، مغوټ، غوټه وربوزی، بغوندي.

**کله غوچک** (kalağučák) نر.م. یو ډول انگور دي.

**کله منار** (kalam(a,ū)nâr) نر.م. د انسانانو له سرونو څخه جوړ شوی څلی (مینار).

**کله کله** (kálakála) ق. ۱) کله ناکله، ځینې وختونه، ځینې اوقات؛ ۲) څه وخت.

**کله ناکله** (kalanākála) ق. و گ. کله کله.

**کلي** (۱) (kıli) ښځ.م (ج. کلیانې) ۱) نوسه، کونجي، چابي، نیسي؛ ۲) حل، حلوونکی (د پوښتنو).

**کلي** (۲) (kalí) ښځ.م. د پتپتانې په لوبه کې هغه څوک چې وسوځي نو نور لوبغاړي هغه وهي.

**کلي** (۳) (kulí) ص. نب. نر. ښځ.م. ۱) زیات، ټول، گرده؛ ۲) من. هغه لفظ چې په یوه ځانگړي او ټاکلي شي پورې اختصاص ونه لري.

**کلی** (kaláy) ص.نر.م ۱) سونگی، بونډی، کونډی، بې ښکرو؛ ۲) نر.م. گڼ کورونه؛ ۲) د محلو مجموعه چې کنډرونه په کې پراته وي.

**کلې** (kâle) صوت. ښځ.م. د مرغیو د شړولو اواز.

**کلۍ** (kəláy) ښځ.م. ۱) ملته بېډۍ، مولته بېډۍ؛ ۲) سپېر کونډۍ؛ ۳) یو ډول اغزن بوټی دی؛ ٤) کلی، غوټۍ؛ ٥) ترازه، قاش، دره.

**کلیات** (kulyát) نر.ج. ۱) ټولې چارې، ټول امور؛ ۲) د یوه شاعر یا لیکوال د آثارو جونگ.

**کلیان** (kalıyán) نر.م. مو. ۱) کلیانړ، نړه کلیان؛ ۲) کلیان تاپ؛ ۳) د سري راگ یو پتر دی.

**کلیت** (kulıyát) نر.م. ۱) کلي والی، کلیتوب؛ ۲) په بیان کې چې کل ذکر شي خو مراد څنې جز وي.

**کلېچ** (kleč) ص. نر.م.ج. غبنتلی، کلک، هغه تار یا سپڼسی چې کلک غبنتل شوی وي.

**کلېچول** (klečawə́l) مص.مت. سختول، کلکول، غبنتل، غړل، تاوول.

**کلېچېدل** (klečedə́l) مص. ل. سختېدل، غبنتل کېدل، غړل کېدل، تاوېدل.

**کلي دان** (kəlıdán) نر.م. ۱) د لرگي سپېر خوکی، د لرگي قلفک؛ ۲) ورتړنه، د دروازې بندونه.

**کلي رد** (kəlirád) ص. نر.ج. تپلی، بې دستوره، بې رواجه، بې دوده، بدخویه (سړی).

**کلیز** (kalíz) نر.م. کالیز؛ ۱) سالگره، تلین؛ ۲) جنتري؛ ۳) کلن، له عدد سره د وروستاړي په توگه استعمالېږي.

**کلیسا** (kalisâ) ښځ.م. (ج. کلیساوې) د مسیحیانو عبادت ځای، د ترسایانو معبد.

**کلیشه** (kališâ) ښځ.م. (ج. کلیشې) دچاپ فلزي صفحه، د زنگو گرافۍ تر عمل وروسته فوتو.

**کلیم** (kalím) ص. نر.م. هم صحبته، څوک چې د یوچا سره خبره لري.

**کلیماټولوجي** (klaymāṭolojí) ښځ.م. اقلیم پوهنه، دجوي پدیدو د منځني حد مطالعه.

**کلیمه** (kalima) ښځ.م. (ج. کلیمې) کلمه، ۱) خبره؛ ۲) مانا لرونکی لفظ، ویی، مورفیم، د څو گړو (سیلبل) مجموعه؛ ۳) کلیمه طیبه.

**کلیمي** (kalimí) ص.نب. نر. ښځ.م. یهوذي، د موسی علیه السلام پر لاره روان.

**کلین** (kalín) نر.م. کلنی حق العمل، دکال حق الزحمه.

**کلینر** (klinár,) ص. نر.م. (ج. کلینران) د باري یا غټ موټر... د موټروان مرستیال.

**کلینیک** (klinik) نر.م. (ج. کلینیکونه) کلنیک، کوچنی روغتون؛ هغه ځای چې د راز راز ځانگو ډاکټران د ناروغانو کتنه او درملنه کوي.

**کليوال** (kəliwā́l) ص. نر.م.ج. ۱) د کلي، د يوه کلي اوسېدونکی، د کلي خلک؛ ۲) سارايي.

**کلي والا** (kəliwālā́) نر.ښځ.م ۱) دکلي خاوند؛ ۲) د کلي خلک؛ ۳) ص. نب. کلي سره تړلی.

**کليوالي** (kəliwālí) ص.نب. نر. ښځ.م.ج. سيمه ييز، محلي، د کلي يا سيمې.

**کليه** [۱] (kulyá) ښځ.م. (ج. کليې) ۱) څه چې د کليت وصف لري؛ ۲) ص.نب. ټول، گرده.

**کليه** [۲] (kılyá) ښځ.م. (ج. کليې) بډوډی، توسی، پښتورگی.

**کم** [۱] (kəm) ض. استفهامي ضمير دی؛ کوم؟.

**کم** [۲] (kam) ص.نر.م.ج. ۱) لږ، کم مقدار؛ ۲) وړوکی؛ ۳) نر.م. کميت، مقدار.

**کماج** (kamā́j) نر.م. مو. کهماج، کماچ، کهماچ؛ په گجرات کې د يوه ښار په نامه، د نيمې شپې يوه راگني (دون) ده.

**کماچو** (kamāčū́) نر.م.ج. کچماچو، يو ډول سابه دي. په يوناني طب کې هم کارېږي.

**کم اصل** (kamásəl) ص. نر.م.ج. ۱) کچه، بدل؛ ۲) بې کولتوره؛ ۳) مج. بداخلاقه، بدذاته.

**کمال** (kamā́l) نر.م. ۱) تمام، بشپړېدنه؛ ۲) معرفت؛ ۳) پرمختگ؛ ٤) مج. کسب، فن، پېشه؛ ٥) کرشنه، هنر.

**کمان** (kamā́n) ښځ.م. وگ. لينده کې.

**کمانچه** (kamānčá) ښځ.م. مو. غجکه، غيچکه؛ لېندکی؛ دموسيقۍ يوه لرگينه آله ده.

**کماندو** (kamāndó) ص.نب.ښځ.م.وگ. کوماندو.

**کمانکښ** (kamānkáṣ) ص. نر.م. ۱) ړونگن، شوغله کوونکی؛ ۲) غلېدونکی، غلانده.

**کمانکښي** (kamānkaṣí) ښځ.م. ليندۍ ويشتنه، هغه لينده چې د غشي ويشتلو د ليندۍ په څېر جوړه شوې وي او غشي کاني پکې ويشتل کېږي.

**کمانه** (kamā́na) ښځ.م. وگ. لينده کې (٤).

**کمانی** (kamānáy) ښځ.م.ج. فنر، ليف سپرينگ؛ د عراده جاتو ارابو ته څېرمه د څو فلزي اوږدو پټو يا تړادو مجموعه ده.

**کمباوتي** (kambā́wati) نر.م(مو.) وگ. کنباوتي.

**کمبتی** (kambatáy) ښځ.م. ۱) د بټې گوتې گانه؛ ۲) غټه گوته، بټه گوته، سبابه.

**کمبخت** (kambáxt) نر.م.ج ۱) بدمرغه، بدبخته؛ ۲) مج. غريب، بېچاره.

**کمبر** (kambár) ص. نر.م.ج. کم سوری.

**کمبری** (kambaráy) نر.م. ۱) گمبيزی، نارنج؛ ۲) ص. نر.م. کمبر، کمبره، کم سوری.

**کمبري** (kambarí) ص. نب. نر. ښځ. م.ج. ۱) نارنجي، د نارنج د پوستکي په څېر رنگ؛ ۲) کم سوروالی.

**کمبل** (kambál) نر.م. وگ. کمبله.

**کمبله** (kambála) ښځ.م. (ج. کمبلې) ۱) تغر، گيلم، گليم؛ ۲) کمبل، کمپل، کمپله، شړۍ.

**کمبلی** (kambaláy) ښځ.م. ۱) کمپلی، څمڅلکی ماښام ځکالی؛ ۲) وړه کمپله؛ ۳) وړوکی تغر.

**کمبو** (kambū́) نر.م. ۱) غونډی، جوال، غونج؛ ۲) گينده، گونده.

**کمبوت** (kambū́t) ص. نر.م.ج. کمبود؛ ۱) کم، تش؛ ۲) نيمگړی.

**کمبوتي** (kambūtí) ښځ.م. کمبودي؛ ۱) کموالی؛ کمښت، تش والی؛ ۲) نيمگړتيا.

**کمبود** (kambū́d) نر.م.ج. وگ. کمبوت.

**کمبوزی** (kambū́zay) نر.م. پوزکی، کروکی، کتبوزی، کتبيزی، د خولې کوری.

**کمبه** (kambá) ښځ.م. خمبه؛ ۱) لوی کندو؛ ۲) انبارخونه.

**کمبېله** (kambelá) ښځ.م. و گ. کامبیله.

**کمپ** (kamp) نر.م. کیمپ؛ ۱) خیمه، ستره خیمه؛ ۲) دخیمو، جونگړو... یو گروپ چې د موقتي اوسېدو لپاره وي؛ ۵) نظامي ژوند.

**کمپار** (kampā́) ص. نر.م. کلال، کولال، کومبار، د خاورینو لوښو جوړوونکی.

**کمپاین** (kampā́yn) نر.م. ۱) د یوه شي د لاس ته راوړلو لپاره د ځینو چارو یوه سلسله؛ ۲) د یوه ځانگړي هدف لپاره د نظامي عملیاتو لړۍ.

**کمپلکس** (kamplíks) نر.م. کامپلکس؛ ۱) مجتمع، مجموعه، سیستم، هغه شی چې له څو اړوندو برخو څخه جوړ وي؛ ۳) مغلق، پېچلی.

**کمپله**[۱] (kampála) ښځ.م. (ج. کمپلې) کمپل، شړۍ، توس.

**کمپله**[۲] (kampála) ښځ.م. د دلې ټپلې، ملگرتیا، گروپ او پلویانو په مانا په لفظي مفرد ډول کارېږي.

**کمپلۍ** (kampaláy) ښځ.م. و گ. کمبلۍ ۱).

**کمپنۍ** (kampanáy) ښځ.م. کمپنی؛ و گ. شرکت ۲).

**کمپوټ** (kampóṭ) نر.م. کمپوت؛ ۱) دبورې په شربتو کې پخه شوې مېوه؛ ۲) داسې مېوه چې په بندې کوټۍ کې ساتله کېږي.

**کمپوډر** (kampoḍár) نر.م. کمپونډر، درمل تطبیقوونکی، دواساز، دوا جوړوونکی.

**کمپوز** (kampóz) نر.م. کمپوزیشن؛ ۱) مو. بدله او ساز جوړول، تصنیف، د یوه موسیقیز یا موزیکال اثر تخلیق؛ ۲) د تورو ټولونه؛ ۳) ادبي تخلیق؛ ٤) د لغتو څخه ترکیبونه جوړول؛ ۵) ترتیبول، برابرول، سمول.

**کمپوزر** (kampozár) نر.م. کومپوزیټور، کمپوزگر، نغمه گر، هغه څوک چې کمپوز کوي، هغه څوک چې ترتیب او سمون کوي.

**کمپیوټر** (kampyūṭár) نر.م. ۱) شمېرونکی، محاسب؛ ۲) یوه آله ده چې په زیاتې چټکتیا سره منطقي یا ریاضي محاسبې کوي، هغه سره غونډوي، زېرمه کوي یې، اړیکې یې سمومي او چاپ ته یې چمتو کوي؛ ۳) مجازاً. د پیاوړي حافظې څښتن.

**کمتوب** (kamtób) نر.م. کموالی، کمبوتي، کمتیا، کمي، لږوالی، لږتوب.

**کم جراتي** (kamjuratí) ښځ.م. بې زړه توب، زړورتیا نه لرنه.

**کم جنسه** (kamjə́nsa) ص.نب. نر. ښځ.م.ج. کم اصله، کم اصل، بد ذاته.

**کمچ** (kəmáč) نر.م. تیرک، څکېز، وڅکیز، سدام، ستنې، د کېږدۍ تیر.

**کمچه** (kamáča) ښځ.م. ۱) د بار د تړلو لرگی؛ ۲) د مړي یا خاروي د لېږد لرگی؛ ۳) کوچنۍ پښتۍ.

**کمڅۍ** (kamcáy) ښځ.م. و گ. کوڅۍ.

**کمڅېرۍ** (kamceráy) نر.م. یو ډول مرغه دی.

**کم خرڅه** (kamxárca) ص. نر. ښځ.م ۱) څوک چې ډېر لگښت نه کوي؛ ۲) کافي پیسې یا نور لازم توکي نه لرنه.

**کم خوبي** (kamxobí) ښځ.م ۱) بې خوبي؛ ۲) لږ خوب لرنه، لږ خوب کول.

**کم خوره** (kamxóra) ص. نب. نر. ښځ.م.ج. کم خوري، څوک چې لږ خوراک کوي.

**کم خونه** (kamxúna) ص.نب. نر.ښځ.م.ج. په فقرالدم (انیمیا) اخته، د وینې په کمښت اخته.

**کم ذاته** (kamzā́ta) ص. نب. نر. ښځ. م. کم اصله، کم اصل، بدذاته.

**کمر** (kamár) نر. م. ۱) په غره کې غټې تيږې، د غره يا غونډۍ په ډډه کې جګ ځای؛ ۲) برګ آس.

**کمربند** (kamarbánd) نر. م. ملاوستنی، تسمه، د ملا پټی، هغه پټی چې ملا پرې تړل کېږي.

**کمرچين** (kamarčín) نر. م. هغه کميس چې د ملا برخه يې ګونځې ولري.

**کمرشکن** (kamaršıkán) ص. نر. م. ج. ملا ماتوونکی، له اقتصادي اړخه دروند کار.

**کمرغالی** (kamarğā́lay) نر. م. د کمر غولی، په کمره کې اوار ځای.

**کمرغوږی** (kamarğwā́ẓay) ص. نر. م. د هوښ له مخې منځنی، متوسط العقل.

**کمرک** (kamrák) نر. م. بې پاڼو اغزن بوټی دی، دانې يې خوړې وي.

**کمرکښ** (kamarkáṣ) جن. کمرکس، د پلوخې کند، کتيرا.

**کمرکه** (kamaráka) ښځ. م. الماری.

**کمرګل** (kamargwál) نر. م. د کمر خوری، يو ډول بوټی دی چې د کمر او تيږې د پاسه شين کېږي او ژېړ ګل کوي.

**کمره** [۱] (kamrá) ښځ. م. ۱) کوټه، خونه؛ ۲) وګ. کېمره.

**کمره** [۲] (kamára) ښځ. م. ۱) قمري غونډې خړ رنګې مرغۍ ده، ښه رېز کوي؛ ۲) نکاح شوې ښځه؛ ۳) يو ډول سابه دي.

**کمره** [۳] (kamára) ښځ. م (ج. کمرې) غرګی، تيږه، هغه تيږه چې د لاس تر ...ول کېږي او نهري غورځول کېدای شي.

**کمری** [۱] (kamaráy) نر. م. د وريجې پوستکی.

**کمری** [۲] (kamráy) نر. م. اوګردان، لوملاغه، ډونګری، لويه ملاقه.

**کم زامن** (kamzāmə́n) نر. ج. کوچني زامن، لږ زامن.

**کمزورتيا** (kamzortyā́) ښځ. م. کمزوري، ضعف، ضعيفي، کمزوروالی.

**کمزورول** (kamzōrawə́l) مص. مت. کمزوري کول، ضعيفول، ناتوانه کول، له قوته اچول.

**کمزوری** (kamzóray) ص. نر. م. ضعيف، کمزور، خوار، ناتوانه.

**کمزورېدل** (kamzōredə́l) مص. ل. کمزوره کېدل، ناتوانه کېدل، ضعيفېدل.

**کم سوری** (kamsóray) ص. نر. م. کم بره، کمبری، کم سوره.

**کمشنر** (kamıšnə́r) نر. م. ۱) صلاحيت لرونکی چارواکی؛ ۲) د پلاوي يو غړی؛ ۳) د يوه سيمه ييز سياسي واحد اداره کوونکی.

**کم طاقته** (kamtáqáta) ص. نر. ښځ. م. ج. کم طاقت، کمزوری، ضعيف.

**کم عقل** (kamʂáqal) ص. نر. م. کم عقله، ناپوه، بې عقله، ساده، احمق، شوده، سوډر.

**کم فکره** (kamfíkra) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. کم فکري، ۱) بې فکره؛ ۲) بې حافظې.

**کم فهمه** (kamfáhma) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. څوک چې د درک د قوې له خوا کمزوری وي.

**کم قوته** (kamqūwáta) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ضعيف، بې سيکه، کمزوری، ناتوانه.

**کمک** (kumák) نر. م. وګ. کومک، مرسته.

**کم کاڼی** (kamkā́ṇay) نر. م. د مثانې ډبره، ککری، د مثانې ګيتی.

**کمکلی** (kamkaláy) ص. نر. م. کمکی، ډېر ووړوکی، کوچنی، کوچنوټی.

**کمکوټی** (kamkóṭay) ص. نر. م. کوچنوټی، ورکوټی، وړکنکی، کمکلی.

**کمکی** (kamkáy) نر. م. وړوکی، کوچنی، ووړ.

**کمکیتوب** (kamkitób) نر. م. وړوکتوب، کوچنیتوب، وړوکوالی، کمکیوالی، کمکینه.

**کم له کمه** (kámlakáma) ق. کم تر کمه، لږ تر لږه.

**کملی** (kamláy) ص. ښځ. م. ج. هغه ښځه چې د دوو کسو پرې دعوا وي او د لانجې د حل لپاره دربیمګړي ته ورکړې شي.

**کم مایه** (kammāyá) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. د لږې پانګې خاوند، د کمو شتو خاوند.

**کمند** (kamánd) نر. م. ۱) خمند، لومه، جال، دام؛ ۲) کمان، پړی، طناب؛ ۳) هغه پړی چې آسونه پرې تړل کېږي.

**کمندری** (kamandráy) نر. م ۱) مندری، جندری، لوبشتکی؛ ټیټ قدی؛ ۲) کمزوری، ضعیف.

**کم نصیبه** (kamnasībá) ص. نر. ښځ. م. ج. بدمرغه، بدبخته، سپېره، کم نصیبی.

**کم نظری** (kanazáray) نر. م ۱) د کمزورو سترګو خاوند؛ ۲) سپک نظری. په درنه نه کتونکی.

**کمڼ** (kamáṇ) ص. نر. م. ۱) مراوی، شیته، زموړ؛ ۲) ارام، غلی، کرار، قرار.

**کمڼوالی** (kamaṇwā́lay) نر. م. ۱) مراویتوب، شیته والی؛ ۲) کراروالی، غلیتوب.

**کمڼول** (kamṇawál) مص. مت. ۱) مراوي کول، جینجرول؛ ۲) ارامول، غلي کول، کرارول.

**کمڼېدل** (kamaṇedál) مص. ل. ۱) مراوي کېدل، شیته کېدل؛ ۲) کرارېدل، غلي کېدل.

**کم واکی** (kamwā́kay) ص. نر. م. بې واکی، د لږ واک او اختیار خاوند؛ ۲) ضعیف.

**کموالی** (kamwā́lay) نر. م. ۱) لږوالی، لږېدنه، تر یوه ټاکلي حد راکښته کېدنه.

**کموډي** (kamóḍe) جن. اعلی نری وریجې.

**کموډ** (kamóḍ) نر. م. متیازغالی، مستراح.

**کمول** (kamawál) مص. مت. ۱) لږول، لږ کول؛ ۲) پټول، غلاکول؛ ۳) ګرځول، ستنول.

**کموله** (kamóla) ښځ. م. ج. جن. کموده، نری وریجې، نری وریجه.

**کمون** (kəmū́n) نر. م. کومیون؛ ۱) عوام؛ ۲) وړه ټولنه (کمیونیټي)؛ ۳) وړوکې اتحادیه ٤) اشتراکي کرونده.

**کمونیزم** (kəmūnízəm) نر. م. کمونیسم؛ پرګنواله، اشتراکي نظریه، اشتراکي مرام یا اصول، کمونیستي.

**کمونیسټ** (kamūnísṭ) ص. نر. م ۱) د پرګنوالي پلوي، د اشتراکي نظریې څښتن؛ ۲) د کمونیسټ د ګوند یو غړی.

**کم همته** (kamhimáta) ص. نب. ښځ. م. بې غیرته.

**کمی** (kə́máy) نر. م. ۱) کمښت، کمبوتي، لږوالی؛ ۲) کم بختي؛ ۳) یو ډول اغزن بوټی دی چې پلنې پاڼې لري او ژاولې ترې لاس ته راځي.

**کمي** (kamí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ۱) مقداري، د اندازې د کمیت، په کمیت اړوند، د کیفي ضد؛ ۲) و ګ. کمی ۱).

**کمیابه** (kamyā́ba) ص. نب. نر. ښځ. م. ناویاته، نادر، کمیاب، لږ پیدا کېدونکی شی.

**کمیت** (kamyát) نر. م. څومره والی، اندازه، مقدار، شمېر، تعداد، د یوه شي یا پدیدې، زماني او مکاني مختصات.

**کمیټه** ( kamiṭá ) ښځ.م (ج. کمیټې) ۱) خصوصي انجمن، جرګه، خصوصي ټولنه، هیئت، کمیټي، انجمن؛ ۱) د یوه ګوند ټاکل شوي کسان.

**کمیدان** ( kūmaydā́n ) یو عسکري لقب دی چې د امیرشیرعلیخان په وخت کې د پښتو په «ناب» واړول شو.

**کمېدل** ( kamedə́l ) مص.ل. لږېدل، کم کېدل، تر یوه ټاکلي کمیت یا کیفیت راکښته کېدل.

**کمیډي** ( kumiḍí ) ښځ.م. وګ. کومیډي.

**کمیز** ( kamíz ) نر.م. سراب، پیریان اوبه.

**کمیس** (kamís) نر.م (ج. کمیسونه) خت، قمیص، هر یوه جامه چې د بدن پاسنۍ برخه پرې پټوي.

**کمیسار** ( kəmisā́r ) نر.م. ص. ۱) کلانتر، د ښار د یوې برخې د امنیت ساتونکی؛ ۲) کمشنر؛ ۳) سرحد دار؛ ٤) عس. زېرمه وال.

**کمیسیان** ( kəmisyā́n ) نر.ج. مغزي، هغه څرمنې چې په ګلابتونو ښکلې شوې وي.

**کمېسیون** ( kəmesyū́n ) نر.م. ۱) دخاصو چارو د ترسره کولو لپاره یو صلاحیت لرونکی مقام؛ ۲) انجمن، پلاوی، هیئت؛ ۳) اجرا، اعمال.

**کمېشن کار** ( kamešənkā́r ) نر.م. ص. څوک چې د کمېشن اخیستلو کسب کوي.

**کمیک** ( kumík ) ص.نر.م. وګ. کومیک.

**کمین** ( kamín ) ص.نر.م. ۱) څارو، څارځای؛ ۲) څو، پټونی؛ ۳) عاجز، خاکسار.

**کمینه** ( kamína ) ص.نب. نر. ښځ.م. ج. عاجز، حقیر و فقیر، خاکسار، کم نوسی، متواضع.

**کمیني** ( kaminí ) ښځ.م. کم نوسي، خاکساري، عاجزي، تواضع.

**کناره** ( kınārá ) ښځ.م ۱) ګوښه، څنډه، غاړه، بغل؛ ۲) ساحل؛ ۳) ص. نب. څنګزن. منزوی.

**کناری** ( kunāráy ) نر.م. چرمه، زرمه، څرمې، پلنې او نرۍ ټوټې چې یو څه ګلابتون هم په کې وي.

**کنال**[۱] ( kunā́l ) نر.م. ۱) کنډولی، کنډول، خاورۍ؛ ۲) تغاره، تغار، طشت.

**کنال**[۲] ( kanā́l ) نر.م. دجریب څلورمه، پنځه بسوې، شل مرلې.

**کنامکه** ( kanāmə́ka ) ښځ.م. د مرغیو نیولو اوسپنیز لټ (تلکه، تلک).

**کناوېز** ( kanāwéz ) نر.م. وګ. قناویز.

**کنایه** ( kināyá ) ښځ.م. (ج. کنایې) کنایت؛ ۱) د بیان د علم یو بحث؛ ۲) که متکلم یوه مانا په داسې لفظونو کې ذکر کړي چې د مطلوبې مانا لپاره یې وضعي مانا د دلیل حیثیت ولري.

**کنباوتي** ( kanbāwatí ) نر.م. (معو.) کنمباوتي، کنبهاوتي؛ د مالکوس یوه ګاډو راګنې ده.

**کنپل** ( kanpál ) نرم. د پښې لومړی منډه، د پل اثر، پل، د لومړي پل یا قدم اثر.

**کنتراپون** ( kantrāpón ) نر.م (مو) کاونټرپوائنټ په موسیقي کې د حرکت او اجرا په وخت کې د څو میلوډیو د توافق او همغاږتوب فن.

**کنټرول** ( kanṭról ) نر.م. ۱) نظارت او کره کول؛ ۲) چک کول، امتحانول؛ ۳) څارنه، هدایت؛ ٤) زغم؛ ۵) واګې په لاس کې نیول، ایسارول.

**کنټکین** ( kanṭkín ) نر.م. سپنسین توکر، نخي ټوټه.

**کنج**[۱] ( kanj ) نر.م. قنج، ناز، کرشمه، نخره.

**کنج**[۲] ( kunj ) نر.م. (ج. کنجونه) کونج؛ ۱) ګوټ، زاویه؛ ۲) دګڼو ونو سیوری.

**کنجاړه** ( kunjāṛá ) جن. وګ. کونجاړه

**کنجپوړ** ( kanjapóṛ ) نر.م. چونګاښ، چنګاښ، کوني کاټر، کنجیپوړ، کوني کبر.

**کنجخور** (kanjxór) ص. نر.م. کم خور، څوک چې لږ خوراک کوي.

**کنجد** (kunjíd) جن. و گ. کونځله.

**کنجر** (kanjā́r) ص. نر.م.ج. ۱) بې حیا، سپین سترگی؛ ۲) بداخلاقه.

**کنجرخ** (kanjráx) نر.م. د اوبو بند، بند.

**کنجرۍ** (kanjráy) ښځ.م.ج. ۱) کنچنۍ، کچنۍ، کنجره، بې حیا؛ ۲) بداخلاقه ښځه.

**کنجړ** (kanjā́ṛ) نر.م. کنځړ، برستن، شیرک، تلتک.

**کنجړان** (kanjṛā́n) نر.م. بغوټ، مرغړی، بغوتی، مغوټ.

**کنجغوت** (kanjağū́t) نر.م ۱) تورتم، توره تیاره؛ ۲) تیاره او تنگ ځای؛ ۳) هغه پردی ځای چې ښاروي په کې څروي یا یې په کې ایساروي.

**کنجک** (kanják) نر.م. ۱) گورگوتي وښبته؛ ۲) غوبلرگی، اوږد لرگی دی چې سر یې کوږ وي او د درمند د میده کولو څېر ورپورې ترل کېږي.

**کنجکاو** (kunjkā́w) ص. نر.م.ج. ځیر، څوک چې په یوه خبره پسې د هر گرځي او غواړي چې جزئیات یې ځان ته څرگند کړي.

**کنجکاوي** (kùnjkāwí) ښځ.م. ځیرتیا، ځیرنه، غور، دقت، د یوه خبر جزئیات یې ځان ته څرگندول.

**کنجکدار** (kunjakdā́r) نر.م. تکي تکي مار، خال خالي منگور، برگ ماز.

**کنجکه** (kunjáka) ښځ.م. ۱) کونجکه؛ ۲) مج. لږ شی، کم څیز.

**کنجکی**(۱) (kanjakáy) نر.م. ۱) کولپی ستن، قلفي سنجاق، پینگ؛ ۲) سیخک.

**کنجکی**(۲) (kunjakáy) نر.م. ۱) د کنج مصغر، وړوکی گوټ؛ ۲) درې کونجی پټی.

**کنجن** (kanján) ص. نر.م ۱) کنج کوونکی، نازولی؛ ۲) دل، ورغستلی، نیم میده، نیم تکولی.

**کنجواله** (kanjwā́la) ښځ.م. ځان خوښونه، په ځان مینتوب، ایگوییزم.

**کنجوس**(۱) (kanjū́s) نر.م. سخت، ممسک، شوم، بخیل.

**کنجوس**(۲) (kanjawás) نر.م. هغه ځوړنده کونډه چې آس سواره په کې د لاس د وزگارولو لپاره څه ځوړندوي.

**کنجوغه** (kanjuğā́) ښځ.م. قنجوغه؛ اسپنډوکی، د بایسکل، موترسایکل تر شا فلزي وسیله ده چې شیان په کې کلکېږي.

**کنجول** (kanawā́l) مص.مت. ۱) کنجېیل، ناز کول، قدرمنول؛ ۲) نازول، قدرول.

**کنجي** (kunjí) ښځ.م. ۱) و گ. کونجي؛ ۲) ص. نب. د کنج، د زاویې، په کنج اړوند.

**کنجېیل** (kanjeyā́l) مص.مت. و گ. کنجول.

**کنځا** (kanǰā́) ښځ.م. ښکنځا، ښکنځل، کنځله.

**کنځرۍ** (kanǰəráy) نر.م. شیرخشت، د کنډ په څېر درمل دی.

**کنځړ** (kanǰā́ṛ) نر.م. کنجړ، شیرک، برستنه، برستن، تلتک.

**کنځکی** (kanǰəkáy) نر.م. اوږد تیر دی چې په کېږدۍ کې په افقي ډول نصبېږي.

**کنځل** (kanǰə́l) نر.ج. ۱) کنځا، ښکنځا، کنځلې؛ ۲) و گ. ښکنځل.

**کنځله** (kanǰə́la) ښځ.م. ۱) و گ. ښکنځا؛ ۲) د هندي میاشت نوم.

**کنځلې** (kunǰā́le) ښځ.م. ښځ.م. ازغکی، کارېزه، یو بوټی دی چې ژېړ گلان کوي. دانې یې د غنمو له دانو سره خوږو ته یو ځای نیني کوي.

کنځوره (kanǰūwā́ra) ښځ.م. یو بوټی دی چې د کوځک او د نس د چینجیو د لمنځه وړلو لپاره کارېږي.

کنځول (kanǰū́l) نر.م. بالاپوښ، بالاپوش.

کنځه (kanǰá) ښځ.م. شپين غټه، بوټنه، کرمه، د نصيب گوته، د شهادت گوته.

کند (kand) نر.م. ۱) و گ. قند؛ ۲) درز، چاود؛ ۳) خوږ، لگه، سم؛ ٤) گودری، گنغ، گند؛ د فقیرانو کمیس ډوله پوښناک چې ډېر دروند وي.

کندال (kandā́l) نر.م. خورځونه، د ټوپک د شپېلۍ هغه برخه چې کارتوس په کې ننوځي.

کندانی (kandanáy) ښځ.م. کندلوښی، قندانی، هغه لوښی چې قند و بوره په کې ږدي.

کندپوښ (kandpóṣ) ص.نر.م. گنغ اغوستونکی، کند اغوستونکی، فقیر.

کندره (kándrá) ښځ.م. و گ. کنده(۱).

کندری[1] (kundráy) نر.م. هغې وړینې کڅوړې چې خپلوانې ښځې یې د واده په ورځ د واده د مبارکۍ په نامه د هلک کورته وړي.

کندری[2] (kandráy) نر.م. ډاگ، اوار مېدان.

کندغالی (kandğā́lay) نر.م. ۱) ډوغل، کنده، ژور ځای؛ ۲) غار، سوړه.

کندکی (kandakáy) نر.م. یو ډول وربښمین گنډون دی چې د زړوکي په څنډو کې کېږي.

کندل (kandā́l) مص.مت. کیندل، کینل، ژورول.

کندو (kandū́) نر.م. (ج. کندوان) خمبه، خاورین لوښی دی چې غله او اوړه په کې ساتي.

کندوری[1] (kandūṛáy) نر.م. وړوکی کندو.

کندوری[2] (kandóṛay) نر.م. کودرکی، کونډی، د خاورین مات شوي لوښي ټوټه.

کندوړی (kandoṛáy) ښځ.م. وړه کنده، کوچنۍ کنده، ورکوټې کنده، وړوچکې کنده.

کنده[1] (kánda) ښځ.م. (ج. کندې) کندره، په ځمکه کې اوږد ژور ځای چې کم سوری وي.

کنده[2] (kūnda) ښځ.م (ج. کندې) و گ. کونده۳).

کندی (kandáy) نر.م. (ج. کندی) کورنی، پلرینه؛ ۱) په قبیلوي واحد کې یو محلي ناحیوي واحد دی چې ترکلي کوچنی وي؛ ۲) د وړیو پړی، د وړیو بیاسته، وړین وابښ.

کندیدار (kandidā́r) ص. نر.م. ۱) د کندي مشر، د کورنۍ مشر؛ ۲) د یوه کندي خلک.

کندي کودري (kándikawdā́ri) ص. ښځ.م. کندې کوندې، کندې کندې ځمکه.

کندیل (kandíl) نر.م. ۱) خندک، خندق، ژور ایستل شوی ځای؛ ۲) خاورین ښانک.

کنډ (kanḍ) جن. ۱) کنډوري، زرکنډ، هر شی چې له ونې څخه ترشح کوي بیا کلکېږي؛ ۲) کنډاتي، وروړه؛ ۳) تري، بوره؛ ٤) ص.نب. غوټې، کنډ کنډ.

کنډا (kanḍā́) ص. نب. ښځ.م. ۱) کنډاو، کونډې، هغه غوا یا غویی چې ښکر یې مات وي؛ ۲) شونډور، شونډو، هغه څوک چې شونډه یې چاود ولري.

کنډاتي (kanḍā́ti) جن. کنډاس، اوروړه.

کنډاس (kanḍā́s) ص.نر.م.ج ۱) د هغه چا چې د خولې مخنی یو یا دوه غاښونه غور ... دلي وي؛ ۲) کرشوپ، کنډول.

کنډاستوب (kanḍāstób) نر.م. ۱) کنډاسوالی، کنډاستیا؛ ۲) کرشوپتیا، کرشوپوالی.

کنډاسه (kanḍā́sa) ښځ.م. (ق.ک.) په جگړه کې دیوه چا غاښ ماتولو یا ایستلو ته کنډاسه وایي.

**کنډال** (kanḍā́l) نر.م. ۱) کنډول؛ ۲) خاورین بهانګ؛ ۳) ارکاره، کړخو؛ ٤) طشت، تغاره.

**کنډاله** (kanḍālā́) ښځ.م. ۱) خنجر؛ ۲) وګ. کونداله.

**کنډاو** (kanḍáw) نر.م. ۱) کنډو؛ ۲) درز، چاود؛ ۳) تنګی، ناو؛ ٤) غابنی؛ ٥) نیمګړی، ناقص؛ ٦) هغه غویی چې ښکر یې مات وي.

**کنډر** (kanḍár) نر.م. (ج. کنډرونه) ۱) د کوټې څلور دېوالونه چې سر یې پټ شوی نه وي؛ ۲) خرابه، کنډواله؛ ۲) مج. ساده او غریبانه کور.

**کنډری** (kanḍáray) نر.م. ۱) یو ډول واړه او ګرد اغزي دي؛ ۲) ص. نر.م. چې د بل چا په کور یا کوټه کې مېشت وي، ګاونډی، همسایه.

**کنډک** (kanḍák) نر.م (ج. کنډکونه) ۱) د مېږو او وزو یوه ټاکلې رمه؛ ۲) کنډوی، توک؛ ۳) عس. بټیلین، د پیاده لښکر درېو یا څلورو ټولیو ته کنډک وایي.

**کنډکپر** (kā́nḍkapár) نر.م.ج. کنډوکپر، ناهموار، کنډې کپرې، لوړ و ژوړ.

**کنډکتر** (kanḍaktā́r) نر.م. وګ. کانډکتر.

**کنډکمشر** (kanḍakmā́šar) ص. نر.م. (عس.) څوک چې د کنډک مشر وي (جګړن).

**کنډکنډ** (kā́nḍkā́nḍ) ص. نب. ۱) غوټې غوټې، هغه وینې چې غوټې غوټې شوې وي؛ ۲) هغه اوښکې چې غوټې غوټې رارواني وي.

**کنډکی** (kanḍakā́y) نر.م. پارچه، توټه، ټوکړ، د کنګل کنډکی.

**کنډکین** (kā́nḍkīn) نر.م.ج. کنټکین، نخې ټوکر.

**کنډلی** (kanḍalā́y) ښځ.م. د یوه بوټي نوم.

**کنډنسر** (kanḍansā́r) نر.م. (ج. کنډنسران) کانډنسر، کانډنساتور، وګ. خازن ۲).

**کنډو** (kanḍáw) نر.م. ۱) کنډاو، غابنی، ګابنی؛ ۲) د دېوال سوری؛ ۳) مج. کنډم، مات، ناقص.

**کنډواله** (kanḍwála) ښځ.م (ج. کنډوالې) ویرانه، خرابه، کنډر.

**کنډور** (kanḍúr) جن. یوه ماده ده چې د کاغذ پر مخ منبل کېږي چې رنګ پرې نشر و نه کړي.

**کنډوري** (kanḍúri) جن. وګ. کنډ ۱).

**کنډوری** (kanḍúray) نر.م. ګاړګوزی، ګاړسوری، د شهادت او غټې ګوتې ترمنځ واټن.

**کنډوسکي** (kanḍúski) ښځ.م. د جوارو غوټې، د جوارو توکې، د جوارو شېټې.

**کنډوکنډو** (kanḍáwkanḍáw) ص. نب. ۱) کنډم، مات مات؛ ۲) نیمګړی؛ ۳) غابنی غابنی.

**کنډوکی** (kanḍúkay) نر.م. ۱) د خواړه شي توټه (توکوری)؛ ۲) د لمنځې او نښتر ژاوله.

**کنډول** (kanḍól) نر.م ۱) کونډول، کنډولی، خوری؛ ۲) مات شوی خاورین لوښي؛ ۳) نر.م.ج. کړشوپ، کنډاس، نپ؛ ٤) مات.

**کنډوله** (kanḍóla) ښځ.م. ۱) د ورې مولۍ په څېر یو غرنی نبات دی؛ ۲) ګلدانی.

**کنډولی** (kanḍoláy) نر.م. ۱) خاورینه کاسه، خوری، تولګی، کنډول؛ ۲) خاورینه پیاله.

**کنډولي** (kanḍóli) ښځ.م. د کنډول جمع؛ (وګ. کنډوله ۱).

**کنډووالی** (kanḍawwā́lay) نر.م. کنډم والی، نیمګړتیا، ناقص والی، نشتوالی.

**کنډوول** (kanḍawawā́l) مص.مت. ۱) کنډو کول، کنډمول؛ ۲) نیمګړی کول؛ ٤) مج. له منځه وړل؛ ٥) کمول.

**کنډوی** (kanḍáway) نر.م. کټره، کنډک، توټه، د دوډۍ توټه.

**کنډوېدل** (kanḍawedə́l) مص.ل. ۱) کنډو کېدل؛ ۲) نیمګړي کېدل، ناقصېدل؛ ۳) مج. له منځه تلل؛ ۴) لړېدل، کمېدل.

**کنډه** (kanḍá) ښځ.م. ۱) زرتله، کوچنۍ تله چې زر او دارو پرې تلي؛ ۲) پیمانه؛ ۳) پانګ، دړه؛ ۴) جیره، په ټاکلي اندازه خوراک؛ ۵) سرچینه؛ ۶) مجسمه؛ ۷) د غره غټه تیږه (چې رغړول کېږي).

**کنډۍ** (kanḍə́y) ښځ.م ۱) کوتمځه، څپرۍ، کوډل، کوډله؛ ۲) کنې، کنۍ، تانسته، تنسته.

**کنډیاله** (kanḍyā́la) ښځ.م. ۱) کنډواله، خرابه؛ ۲) هغه ځای چې ښاروي په کې دمه کوي.

**کنډیل** (kanḍíl) نر.م. کاشین، خاورین لوی ښانک چې اوړه په کې اغږي.

**کنرکی** (kanárkay) نر.م. د لاندې کباب، د وچې شوې غوښې کباب.

**کنزه ګوته** (kánzagwə́ta) ښځ.م. نسیبه، کنځه، کرمه، بونډه، مسواکه، د شهادت ګوته.

**کنس** (kans) ص. نر.م. حل، منحل، حل شوی، اوبه شوی.

**کنست** (kanə́st) ف. ۱) کینست، د کنستل فعلي ریښه ده؛ ۲) کیند، کنسته، د لېږې ماضي استمراري فعل دی؛ ۳) نر.م. کیندنه، کنستنه.

**کنستر** (kunastə́r) نر.م. کونستر؛ ۱) کوینی، د دېګ ببخ، کوبلی؛ ۲) د غره اړخ، اړخی.

**کنستک** (kanastə́k) ص. نر.م. کنسکی، بخیل، کنجوس، ممسک، سخت، شوم.

**کنستل** (kanastə́l) مص. مت. کندل، کیندل، ژورول.

**کنسرټ** (kansə́rṭ) نر.م. کانسرټ؛ مو. ساز و اواز، همغاړی ساز و اواز، بدلې ویل.

**کنسرټو** (kansərṭó) ښځ.م. کنچرټو، کنسرټو، د سنفونیکي موسیقۍ یو فورم دی.

**کنسرواتور** (kansərwātór) نر.م. کنسرواتوار؛ د موسیقۍ او ننداریزو هنرونو ښوونځی.

**کنسروه** (kansárwa) کونسرف، کانسرو، کنسرو جن. هغه خواړه، مېوې او... چې په سر تړلو فلزي، ډبلیو کې خوندي شوي وي.

**کنسکتوب** (kansaktób) نر.م. کنسکتیا، بخیلي اسیتوب، ممسکي، شوموالی، سختي.

**کنسوی** (kansə́way) نر.م. ۱) کونسوی، بې ځینه په اس سپرېدل؛ ۲) کونسوی، هغه ننګولی چې په دېګ کې وسوځي او دېګ ببخ ونیسي.

**کنښت** (kanə́ṣt) ف. و ګ. کنست.

**کنغاره** (kanğára) ښځ.م. کونغره، کنغره، کونډۍ، تورهډوکی، د کوناټي هډوکی.

**کنغښی** (kanğaṣáy) نر.م. و ګ. کرغښی.

**کنف** (kanáf) نر.م. ج. و ګ. کتان.

**کنفدراسیون** (kanfidrāsyū́n) نر.م. و ګ. کانفدرېشن

**کنفرانس** (kanfaráns) نر.م. کانفرانس؛ ۱) پر یوې جدي موضوع باندې بحث؛ ۲) د مذاکرې او مباحثې لپاره د څو کسو رسمي غونډه.

**کنکرک** (kankərák) ص.نر.م ۱) ککر، کوکله؛ ۲) کنګل، یخ شوی، یخی.

**کنکری** (kankáray) نر.م. کریانک، پوشتکی، خرسوونکی، کرپوونکی، پاپړ.

**کنکوک** (kankū́k) نر.م. بادیوه، ګوډۍ، کاغذباد، کاغذپران، ګوډي پران.

**کنګاش** (kangā́š) نر.م. سلا، مشوره مصلحت.

**کنګال** (kangā́l) نر.م. ۱) نرمیه، غړده، اندریه، اوکښه، آبکش؛ ۲) خوار، نېستمن؛ بې خیره.

**کنګالول** (kangālawə́l) مص. مت. ۱) غړول، او کښول، اوبه پرې تېرول؛ ۲) خوارول.

**کنګالي** (kangā́li) جن. هغه اوبه چې کالي او لوښي پرې پرېولل شوي وي.

**کنګالی** (kangālə́y) نر.م. د شیانو مینځلو لوښی، هغه لوښی چې نور شیان په کې کنګالېږي.

**کنګالېدل** (kangāledə́l) مص. ل. غړېدل، اندرېدل، اوبه پرې تېرېدل، مینځل کېدل.

**کنګخړ** (kangaxə́ṛ) نر.م. ج ۱) ګنګخړ، ګنګخره، خځله، نیز وړی؛ ۲) مج. بې توښې شیان.

**کنګر** (kangír) نر.م. سوګلونی، سنګپای.

**کنګرخل** (kangirxə́l) نر.م. ج. کنګړ، کنکړ، د څارویو له خوراکه پاتې شوني بې پانو واښه.

**کنګرو** (kangrū́) نر.م. ۱) یو ډول تور وریښمین مزی دی؛ ۲) یو ډول منحني ډوله بخې ده.

**کنګره(۱)** (kangará) ښځ.م ۱) د اوبو په مخ د کنګل نری پرده؛ ۲) و ګ. کانګرس؛ ۳) حزبي کنګره: د ګوند د رهبرۍ تر ټولو لوړ مقام او اورګان.

**کنګره(۲)** (kangrá) ښځ.م (ج. کنګرې) ۱) کتاره، د بام مخې ته حفاظتي کتاره؛ ۲) د ښار دساتنې دېوال؛ ۳) د غره او دېوال پاسنۍ لوړه برخه.

**کنګره(۳)** (k(a,u)ngurá) ښځ.م (ج. کونګزې) په اوېدلو کې یو ډول ځنډه ده.

**کنګری** (kangrə́y) ښځ.م. ۱) تاخچه، طاقچه؛ ۲) دېوالي الماری؛ ۳) د دېوال کتاره.

**کنګرېزی** (kangrezə́y) نر.م ۱) انګازه؛ ۲) اهتزاز لړونکی موزون اواز؛ ۳) شنګار، په غوږونو کې شرنګی.

**کنګړ** (kangə́ṛ) نر.م. ج. ۱) کړ، کانکړ، کنګرخل، د وښو پاتې شوني؛ ۲) نر.م. وښی، کنګې، د زړو یا ژېړو کړی؛ ۳) کنګل، یخی، یخ.

**کنګړی** (kangṛáy) نر.م. ګرګی، ګریکری، د ړلی وړې وړې دانې.

**کنګس** (kángas) نر.م ۱) تکرخورونه؛ ۲) غورځېدنه ګوزارېدنه؛ ۳) له مقام څخه ګوښه کېدنه؛ ۴) مج. کنګسي، ځان ناګاره کول.

**کنګل** (kangál) نر.م. (ج. کنګلونه) ۱) یخی، یخ، د اوبو یخی کېدل؛ ۲) مج. سوړ؛ ۳) ړلی.

**کنګل ځی** (kangaljáy) نر.م. کنګاځی، کنګلنی، یخدان، د یخي د جوړولو او ساتلو ځای.

**کنګلنی** (kanglə́ṇay) نر.م. و ګ. کنګل ځی.

**کنګلول** (kángalawə́l) مص. مت. یخی کول، یخی جوړول، یخ نیول، منجمدول.

**کنګلېدل** (kángaledə́l) مص. ل. ۱) یخی کېدل، یخ کېدل، منجمد کېدل؛ ۲) مج. له چلنده ویستل.

**کنګڼ** (kangə́ṇ) نر.م. و ګ. کنګر(۲).

**کنګڼه** (kangaṇá) ښځ.م. یو ډول لښتی دي چې تر عادي لښتیو اوږدې دي.

**کنګو** (kangó) جن. و ګ. زعفران.

**کنګوره** (kangorá) ښځ.م. کندی، د پوړنی یا... په څنډو کې منکسر ډوله مزی چې وګنډل شي.

**کنګوسی** (kangūsáy) نر.م. و ګ. کنګس(۲).

**کنګه** (kə́nga) ښځ.م. ۱) تبی، شنخته، کنګی؛ ۲) ص. ښځ.م. پوره پېغله، کورانګه، چتېه، هغه پېغله چې جګه او دنګه ونه ولري.

**کنګي** (kangí) ښځ.م. ج. مرداري، چتلي، ناولتیا.

**کنګۍ** (kangə́y) ښځ.م. و ګ. کنګه(۱).

**کنګینه** (kanginá) ښځ.م. و ګ. کنګوله.

**کنل** (k(a,i)nal) مص. مت. و ګ. کیندل.

**کنوانسیون** (kanwānsyū́n) نر.م. کانوانسیون، کونونسیون؛ ۱) مجمع، غونډه، جرګه، انجمن، مجلس؛ ۲) د سیاسي، مذهبي، تجارتي او...

منسوبينو يا هيئتونو دوره يې اسامبله؛ ۳) تر
دغسې اسامبلې تېر شوى ترون، ژمنليک.

**کنوبى** (kanobáy) نر.م. کروب، کروبى، هغه ښوروا چې د ديګې په بېخ کې پاتې شي.

**کنود** (kanód) ص. نر.م. کچوت، ناشکره، څوک چې د نعمت په قدر نه پوهېږي.

**کنودل** (kanodə́l) مص. مت. کيندل، کنل، کينل، کنستل، کنول.

**کنوښى** (kanóṣay) نر.م. د اس زين.

**کنه** (kanā́) ۱) يوه کليمه ده چې د ذکر شوي کومې موضوع د تأکيد او تصديق لپاره راوړله کېږي؛ ۲) د «کهنه» لنډون؛ ۳) ښځ.م. کنې، کينکه، د سپږې تخم.

**کنى** (kanə́y) ښځ.م. ۱) دکبانو د نيولو جال؛ ۲) د څمکې څنګونه چې يېوې څخه پاتې شي.

**کنيت** (kunyát) نر.م. و.ګ. کنيه.

**کنيزه** (kaníza) ښځ.م. ۱) مينځه، وينځه؛ ۲) مج. خدمتګاره، مزدوره.

**کنيسه** (kanisā́) ښځ.م. د نصارا (نصاري، ترسا، عيسوي) کليسا او د يهودو معبد.

**کنيه** (kunyā́) ښځ.م (ج. کنيې) کنيت؛ ۱) له اصلي نامه پرته يو نوم دى؛ ۲) لقب.

**کڼ** (kaṇ) نر.م. ۱) ګرنګ، قنبى، کنى، د پوزې مايع؛ ۲) غربدنه؛ ۳) شر، د مايعاتو د توېدو اواز.

**کڼاخه** (kaṇā́xa) ښځ.م. ۱) ګنجى، ګنجى، پکه بابنه؛ ۲) کارګه، کارغه، کوراغ.

**کڼاکې** (kaṇake) ښځ.م. د جوارو نيني، د جوارو پولى.

**کڼاوه** (kaṇawa) ښځ.م (ج. کڼاوې) کړاوه، کورمه، يو ډول ساده لرګينه ګاوله ده.

**کڼاوه ماتې** (kaṇāwamā́te) ښځ.م. (لو.) د کوچنيانو يوه لوبه ده.

**کڼ بکڼ** (kaṇbakā́ṇ) نر.م.ج. بکره، بکوره، پنډبکر، چقماق، چقمق.

**کڼتيا** (kaṇtyā́) ښځ.م. کنوالى؛ و.ګ. کونتوب.

**کڼزرګه** (kaṇzárga) ښځ.م. ژرګه، يو اغزن بوټى دى.

**کڼوڅکى** (kaṇóckay) ص. نر.م. د کوڼ مصغر، کڼ هوڅ، کوڼ، په غوږو درونډ.

**کڼول** (kaṇawə́l) مص. مت. ۱) په غوږو درنول؛ ۲) څوک په ډېرو خبرو سره سترى کول.

**کڼ هوڅ** (kaṇhóc) نر.م. و.ګ. کنوڅکى.

**کڼه ورغه** (kaṇawárğa) ښځ.م. تپوس، مرکباز، کارغه غوندې يو مارغه دى.

**کڼى** (kaṇáy) نر.م ۱) تنسته، تانسته؛ ۲) بوډۍ کټ؛ ۳) پېرختونې، يو ډول نبات دى چې پر نورو نباتاتو راتاوېږي او پتونې ته ورته ګل کوي.

**کڼى** (kaṇáy) ښځ.م ۱) دښمنى، بدي؛ ۲) د پتې يوه څنډه؛ ۲) د لرګي پياله.

**کڼيا** (kaṇyā́) ص. نب. بې حده، ډېر، بې اندازې.

**کڼېدل** (kaṇedə́l) مص.ل. کوڼ کېدل؛ ۱) په غوږو درنېدل؛ ۲) له ډېرو خبرو څخه سترى کېدل.

**کڼي والا** (kaṇiwalā́) ص نب. جولا، کنى اچوونکى، د تنستې اوبدونکى.

**کو** (۱) (kaw) نر.م. کوپان، کوپ، کوهان، ګوپ، بوک؛ د اوښ د ملا د پاسه راوتلې برخه، د غوايي پر وليو د پاسه بوټ ځاى.

**کو** (۲) (kū) نر.م. قو، ۱) بګېل مرز په لاسونو نيول او د خولې په هوا سره ستر يا ايستنه؛ ۲) اوږده ناره؛ ۳) يو ډول ونه ده.

**کواټ** (kwāṭ) ص. نر.م. جونګ، جونګى؛ ۳-۴ کلن اوښ چې نوى بار وړلو ته چمتو شوى وي.

**کواټګی** (kwatgáy) ص. نر.م. د کواټ مصغر.

**کواټل** (kwāṭə́l) مص. مت. و ګ. کوټل.

**کواټه** (kwāṭá) ص. نب. کړتو، قړتو، قړتن، اپلاکي ویونکی، پرتې ویونکی.

**کواټۍ** (kwāṭáy) ښځ.م. ۱) کوتی، ژغورګی، کوانی ۲) لو. د پنډوس یوه لوبه ده.

**کوار** (kwār) نر.م. ج. و ګ. ګوار.

**کوارچه** (kawārčá) ښځ.م. کوچنی کوار، د لښتو وره کجاوه (ټوکرۍ).

**کواره** (kawārá) ښځ.م. (ج. کوارې) د لښتو لویه کجاوه (ټوکرۍ).

**کواړه** (kwāṛá) ښځ.م. کهواړه، د تارونو کړی او کلاوه له نښې چاپېره بړدي، کله چې د نښې ویشتونکی نښه ونه ولي او په کړي یې غشی ننوځي، نو د هغه دبریالیتوب نښه یې ګڼي.

**کواړی** (kawāṛáy) نر.م. هغه کلنګ (میتی) چې د کارغه د منبوکې په څېر وي.

**کوازه** (kawāzá) ښځ.م. (ج. کوازې) کوېزه، پاړ، خوازه.

**کواغۍ** (kwāğáy) ښځ.م. کاغۍ، زاغچکه، یو ډول کوچنی کارغه دی چې غاړه یې سپینه ده.

**کواندی** (kawā́nday) نر.م. د اوښانو یو ډول مهار دی چې له رنګارنګو سنیو څخه جوړیږي.

**کوانۍ** (kwāṇáy) ښځ.م. (لو.) د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**کوای کوای** (kwā́ykwā́y) نر.م. د سورلنډي سورې، د ګیدړ نارې.

**کوب**(۱) (kūb) ص. نر.م.ج. کوپ، شاټیتی، ټیټا، کوړپ، ډوډی.

**کوب**(۲) (k(wa,ū)b) نر.م. بوک، بوکان، ګوپ، د اوبښو بوک.

**کوبای** (kawbā́y) ص. نر.م. کاوبای، کاوبوای؛ ۱) غوبه، ګورروان؛ ۲) نر.م. یو ډول ابي، ښین، کلک ټوکر دی.

**کوبایي** (kawbāyí) ص. نب. نسر. ښځ.م. ۱) په کاوبای اړوند، د ګورروان؛ ۲) د کوبای کارونه.

**کوبړ** (kūbə́ṛ) ص. نر.م.ج. مراوی، جینګ، پیزي، شیته، کمڼ، کومړ.

**کوبلکه** (kobaláka) ښځ.م. ګوڅی، ستوری، مرخېړی، پوڅکی، یو ډول خواړه ډنډر لرونکي ګوڅي دي.

**کوبها** (kobhā́) ښځ.م. د کابل د سیند تاریخي نوم دی. ذکر یې په رېګ وید کې شوی دی.

**کوبی** (kūbay) نر.م. ۱) دسترخوان؛ ۲) ص. نر.م. کوپ، کوپی، کوړپ، شاټیتی، ملاټیتی.

**کوبۍ** (kūbáy) ښځ.م.ج ۱) حباب، پوکڼۍ، بربوکې ۲) کبۍ؛ یو ډول خواړه دی.

**کوبیزم** (kobízam) نر.م. و ګ. کیوبیزم.

**کوپ**(۱) (kop) نر. (ج. کوپونه) ۱) خېز، ټوپ، دانګ؛ ۲) تېښته، له جنجال، عذاب، نقص څخه ځان الونیا کول؛ ۳) کوهان، کوپان.

**کوپ**(۲) (kūp) ص. نر.م. ج. ۱) کوپی، شاټیتی، شاکوپی؛ ۲) مات، راکوږ؛ ۳) چخپیت.

**کوپا**(۱) (kopā́) ص. نر.م. هغه خرڅې دیرغه اس په څېر ځغلي.

**کوپا**(۲) (kūpā́) ص. نب. نر. ښځ.م. و ګ. کوپ(۲).

**کوپار** (kūpā́r) ص. نر.م. ۱) تکره، ۲) عجب کار، هنر؛ ۳) ناتار.

**کوپال** (kopā́l) نر.م. د یوې چوترې (ډبې) په څېر لوی لرګین تخت.

**کوپان** (kopā́n) نر.م. ۱) د اوښ کوهان، بوکان؛ ۲) و ګ. کوپون.

**کوپتیا** (kūptyā́) ص. نب. ۱) ناوره؛ ۲) پرېشان، گډوډ.

**کوپراتیف** (koprātīf) نر.م. مرستندویه موسسه، تعاوني شرکت؛ معمولاً د انتفاعي موسسې یو شکل دی چې د یوې موسسې د څښتنانو او مسؤلانو د مشترکې گټې لپاره فعالیت کوي.

**کوپره** (kopara) جن. ناریال، کوپره، کوپرا، هندي جوز، کوکه نټ.

**کوپړ** (kopáṛ) نر.م. ازبکي خولۍ، د ازبکانو جگه خولۍ.

**کوپړۍ**(۱) (kopṛә́y) ښځ.م. ککرۍ، ککره، کپرۍ.

**کوپړۍ**(۲) (kūprә́y) ښځ.م. ۱) د څرمنې ډبه، چرمي ډبه چې تېل او ... پکې ساتل کېږي؛ ۲) غونج، گونځ، راغونډ، زوړ، بوډا، کړوپ.

**کوپړی** (kopṛáy) نر.م. د زنگون شاتنۍ ژوره بوخه.

**کوپلتۍ** (koplatә́y) ښځ.م. ښکلې، رنگین، کوچنی تغر چې د ناوې په اوښ یې اچوي.

**کوپله**(۱) (kopā́la) ښځ.م. بې ډوله غټه او درنه چینه.

**کوپله**(۲) (kūplá) ښځ.م. سپېرکونډه، توپازن، کلۍ، مشهوره مرغۍ ده.

**کوپلۍ** (koplә́y) ښځ.م. کوپۍ، د زین قاش، د زین پوښ.

**کوپنۍ**(۱) (kopaṇә́y) ښځ.م. مثانه، دمتیازو کڅوړه.

**کوپنۍ**(۲) (kopaṇә́y) ښځ.م. خوله له باده پرسونه.

**کوپول** (kupawal) مص.مت. ۱) کړوپول، پیتول؛ ۲) خوله بندول؛ ۳) ملاتیتول؛ ٤) راکړول.

**کوپون** (kopū́n) نر.م. کوپان؛ ۱) ونډه، سهم؛ ۲) دولت د کال په پیل کې مامورینو ته د مرستې لپاره یوه چاپي کتابچه ورکوي چې د اړتیا وړ مواد په کې ذکر شوي وي. دا مواد په ارزانه بیه له ټاکلي مغازې څخه ترلاسه کوي.

**کوپه** (kopá) ښځ.م ۱) تاکۍ، کوپۍ، دڅاه پاټکی؛ ۲) په دېوال کې د ډېوې ایښوولو لپاره وړوکی تاقگی؛ ۳) گرپه، کورپه، په یوه خاص ترتیب سره د ویښتانو لنډونه؛ ٤) د تېلو لویه ډبه؛ ۵) مج. لافه، باټه؛ ٦) د ښځو یو ډول پسول؛ ۷) ص. نب. نر ښځ.م. چاغ، شلند، پړسېدلی.

**کوپی**(۱) (kūpáy) ص.نر.م. کوپا، کوب، کوپ، شاتیتی، ملاتیتی.

**کوپی**(۲) (kopáy) نر.م. لوغونه، لوغی، د غوا لوشلو لوښی.

**کوپۍ** (kopә́y) ښځ.م ۱) و گ. کوپه؛ ۲) و گ. کوپلۍ ۳) د څېرۍ د دانې پوستکی؛ ٤) بوتل.

**کوپي** (kūpí) ښځ.م. کوپوالی، کوپېدنه.

**کوپېدل** (kūpedә́l) مص.ل. ۱) چیتېدل، پیتېدل؛ ۲) په ملاتیتېدل؛ ۳) راکږېدل.

**کوت**(۱) (kwat) ص. نر.م. ج. ۱) گونځه، گونځې؛ ۲) جینگ؛ ۳) نر.م. گوټ، کونج؛ ٤) نااواره.

**کوت**(۲) (kot) ص.نر.م ۱) وړی؛ ۲) ف. کتله، لتاوه د کتل له مصدره د استمراري غایب صیغه ده؛ ۳) نر.م. هغه سوره چې د سارا خلک د یخنۍ په موسم کې څاروي په کې ساتي؛ ٤) قصابي.

**کوتار** (kawtā́r) ص. نر.م. اخته، بوخت، لگیا.

**کوتان** (kotā́n) نر.م. ۱) قوتان، د زانې په څېر یوه مرغۍ ده؛ ۲) ص.نر.م. کوت، هغه مرغۍ او څاروي چې ډېر خوراک کوي؛ ۳) نر.م. ژور ځای چې جوړوي او سر یې په لښتو پټوي، په دغه ځای کې په پسرلي کې وري او ورغومي ساتي.

**کوتر**(۱) (kawtár) ص.نر.م ۱) اوتر، تلولی، وارخطا؛ ۲) نر.م. کوتره؛ ۳) د کوترې مذکر شکل.

**کوتر**(۲) (kūtár) نر.م. لوی ختکی چې ژوري ژوري کربښې لري.

**کوترام** (kotrám) ص. نر.م. و ګ. کوترم.

**کوترغاړی** (káwtarğāṛay) نر.م. یو ډول کناوېز دی.

**کوترکی** (kūtarkáy) نر.م ۱) د مرغیو نیولو یو ډول کړکومه چې د وزوله وژغنو څخه جوړېږي؛ ۲) و ګ. کوتری(۱).

**کوترم** (kotrám) ص. نر.م. ج. ۱) متراکم، ۲) یو پر بل لوېدلی؛ ۳) په خپلو منځو کې نښېږدې او راټول شوي.

**کوتره**(۱) (kawtára) ښځ.م. (ج. کوترې) کفتره، کفتر، کوتر، یوه مشهوره مرغۍ ده.

**کوتره**(۲) (kotrá) ص. نب. ۱) ټوک ټوک، ټوکر ټوکر، پارچه پارچه؛ ۲) ذرې ذرې؛ ۳) مج. ډېر وهل شوی.

**کوتری**(۱) (kūtráy) نر.م. کوکری، کونګری، کوکرکی، د سپي وړوکی بچی.

**کوتری**(۲) (kawtaráy) نر.م. هغه لرګي چې د چوکاټ دواړه خواوې پرې کلکېږي.

**کوتری غوندی** (kūtráyğūnday) نر.م. هغه لوی جوال (غوندی) چې په اوښ وړل کېږي.

**کوتړه**(۱) (kūtṛá) ښځ.م. د څنګ جېب، د بغل جېب.

**کوتړه**(۲) (kotáṛa) ښځ.م. یو ډول غرنی بوټی دی چې لوی ډنډر لري.

**کوتغالی** (kwatğālay) نر.م. د غره په لمنه کې د لمرخاته خواته وړوکی ځای.

**کوتک** (koták) نر.م. ۱) ډبې، څوبارې، د کالیو مینځلو وړوکی لرګی؛ ۲) لوړ، لوکی، ډانګ.

**کوت کوت** (kwátkwát) ص. نر.م. ۱) ګونځې ګونځې؛ ۲) کت کت، قات قات.

**کوتل**(۱) (kotál) نر.م. (ج. کوتلونه) ۱) غاښی، کنډو؛ ۲) بوچی پسه، بونډی ګډ؛ ۳) پېچومی؛ ۴) ص. نر.م. هغه اس چې د بل اس سره خالي په جلب کې روان وي.

**کوتل**(۲) (kūtál) مص. مت. ۱) حلالول، ذبح کول؛ ۲) پرې پرې کول؛ ۳ پوستول؛ ۴) ټپي کول.

**کوتلځی** (kūtáljāy) نر.م. مسلخ، د حلالېدو ځای.

**کوتلی** (kūtláy) ښځ.م. هغه شیان چې د کفن په ګنډلو او ورکولو کې کارېږي.

**کوتنه**(۱) (kotaná) ښځ.م. ښځینه پرتوګ چې ساده وي او ګونځې و نه لري.

**کوتنه** (kūtána) ښځ.م. ۱) حلالونه، ذبح کونه؛ ۲) وتنه، کوتان، کوتاڼ.

**کوتو** (kūtū́) نر.م. (ج. کوتوان) د خراړې په څېر یوه نوره مرغۍ ده چې ګاټې خوري.

**کوتور** (kwátawár) ص. نر.م. کوت لرونکی، ګونځه لرونکی، کوتدار.

**کوتول** (kwátawál) مص. مت. کوت کول، ګونجه کول، ګونځې کول، چین ورکول.

**کوتونی** (kūtū́nay) نر.م. هغه پسه چې په رنګونو ښکلی کړی شوی وي او د ناوې د پلار کره یې وړولي.

**کوتې**(۱) (kóte) صوت. ښځ.م. کورې، چغه، خچه، د سپي د شړلو اواز.

**کوتې**(۲) (kwáte) صوت. ښځ.م. تیو تیو، د کونګري د رابللو اواز.

**کوتی**(۱) (kū́tay) نر.م ۱) کونګری، کوکری، کوتری د سپي وړوکی بچی؛ ۲) حلاله ذبح، قصابي.

**کوتی**(۲) (kwā́tay) نر.م. ۱) قوتی، ګوتی، په کونج کې وړوکی ځای؛ ۲) زنخدان؛ ۳) دمتې او

ځنګلي ترمنځ ژور ځای؛ ٤) د زنګانه سترګې شاته ژور ځای؛ ٥) ډوغل، ژور ځای.

**کوتی** (kūtáy) ښځ.م. قوتی، دبلی، ډبلی، کوتی، مقوایي یا فلزي محفظه.

**کوتي لال** (kū́tilā́l) نر.م.ج. د تودو سیمو یو نبات دی، ګڼ شنه کېږي، دانې یې سرې زړي.

**کوټ**(۱) (koṭ) نر.م. (ج. کوټونه) ۱) کلا، قلا، ټینګه کلا، لویه جنګي کلا؛ ۲) کرتی، بالاپوښ ۳) ص. نر.م. وسله تون، سلاح کوټ.

**کوټ**(۲) (kūṭ) نر.م. ۱) هفت جوش، یو ډول کلک ترکیبي فلز دی؛ ۲) سخت سری سړی.

**کوټ**(۳) (k(wa ū)ṭ) کوټ کوټ، کورت کورت، د چرګې پر له پسې کړتې.

**کوټ بند** (koṭbánd) نر.م. هغه ځای یا آله چې کالي پرې ځوړندوي.

**کوټخه**(۱) (kūṭáxa) ښځ.م. ۱) هغه خولۍ چې غوږونه هم په کې پټېږي؛ ۲) کټبیزی، پوزبند.

**کوټخه**(۲) (koṭáxa) ښځ.م ۱) کوټه ګۍ، وړه کوټه، ګوډخه؛ ۲) کوډله، کوډلۍ.

**کوټرکی** (kūṭárkay) نر.م. کوټکنکی، وړوکی کوټی، کوچنی کوټی، د کوټي مصغر.

**کوټرنډ** (koṭránḍ) ص. نر.م. اساوی، څوک چې په کوټ (کلا) کې ناست وي.

**کوټک** (kūṭák) نر.م. کوټی، زنخدان، د زنې ژور ځای.

**کوټکار** (kūṭkā́r) نر.م. یو غټ اغزن ځېږ بوټی دی، اغزي یې اوښان خوري.

**کوټ کوپار** (kóṭkūpā́r) نر.م. کلپه ګراني، سخته قیمتي.

**کوټکوټانی** (kūṭkūṭā́nay) ښځ.م. ۱) د کوچنیانو یوه لوبه ده؛ ۲) مج. ډېروتل ننوتل، خرې متې، د چرګې کوټ کوټ کول؛ په څه تمه له چا سره ښه راشه درشه.

**کوټګی** (koṭgáy) نر.م. ۱) وړوکی کوټ، کوچنی کلا؛ ۲) کوچنی کرتی، د کوټ مصغر.

**کوټل** (kūṭál) مص. مبت ۱) دربل، له درانه شي سره نور شیان کېمندل؛ ۲) ټکول، کوفته کول، قیمه کول؛ ۳) کوتره کول؛ ٤) اندېښمن کول، غمول.

**کوټنه** (kūṭána) ښځ.م. کوټنګ؛ ۱) تخته کول، کېمنډنه؛ ۲) کوفته کول؛ ۳) کوتره کول.

**کوټنی**(۱) (kwaṭanáy) ښځ.م. وړه کوټه، وړه دلۍ، کوچنۍ دلۍ.

**کوټنی**(۲) (koṭanáy) ښځ.م ۱) وړه کوټه، کوټګی؛ ۲) هغه وړې کوټې چې کوچنیان یې جوړوي.

**کوټوال** (koṭwā́l) نر.م. (ج. کوټوالان) ۱) د کوټ ساتونکی، د کلا محافظ؛ ۲) د کلي څوکیدار؛ ۳) سپایي، سپاهي؛ ٤) تانه دار.

**کوټونه** (koṭawána) ښځ.م. دلۍ کول، کوټه کول.

**کوټه**(۱) (kotá) ښځ.م (ج. کوټې) ۱) خونه، اطاق؛ ۲) داوښ د کټې د شاتنۍ برخې لوړه اوجګه خوا؛ ۳) ناچله پیسې؛ ٤) وچه غوا یا مېږه چې لرېبیه ولري.

**کوټه**(۲) (kwáṭa) ص. نب. ۱) خره، دلۍ، سر په سر ایښوول شوي؛ ۲) ښځ.م. راغونډ شوي شیان.

**کوټه**(۳) (kwaṭá) ص. ښځ.م. کړکه، کوړکه چرګه، هغه چرګه چې هګۍ اچول یې بس کړي وي.

**کوټه**(٤) (kū́ṭa) ښځ.م. خره، ګټ، کمر، لویه تیږه.

**کوټه ګرم** (koṭagrám) ص.نر.م. ګرم، بېکاره، لټ.

**کوټه توب** (koṭatób) نر.م. کوټه والی، ناچلتوب، کوټه کېدنه، د پیسو ناچل والی.

**کوټه غویی** (koṭáğwayay) نر.م. لټ غویی، درېدلی غویی.

**کوټه کریابه** (koṭákaryāba) ص. ښځ. م. ۱) دېدنې لرونکې ښځه؛ ۲) بدنصیبه، بدمرغه، محتاجه ښځه.

**کوټې**(۱) (kūṭe) ۱) د (لې) له کلیمې سره د وروستاړي په توګه راځي؛ ۲) صوت. نر. م. اشه، د خره او کوټې د شړلو اواز.

**کوټې**(۲) (kwáṭe) ق. کوټه، ډېر، زیات، دلې.

**کوټی**(۱) (kūṭay) نر. م. کڅکی، کوڅکی، کورنګی، خرګندی، د خرې بچی، کوټرکی.

**کوټی**(۲) (koṭáy) نر. م. ۱) سر، د انسان او حیوان سر؛ ۲) کوپړی، د انسان دسرککری.

**کوټی**(۳) (kwaṭáy) نر. م. ۱) د لرګي کندو؛ ۲) تندی، تنډه، وچولی.

**کوټی** (koṭáy) ښځ. م. ۱) ماڼۍ، قصر؛ ۲) کور، تعمیر، مېنه، د پول د دواړو سرونو هغه جګ ځای چې په وچه کې وي او پول پرې ایږدي.

**کوټیالی** (kūṭyaláy) ښځ. م. ځانګړې لوښی یا پیاله ده چې زرګران زر په کې ویلې کوي.

**کوټېدل** (kwaṭedál) مص. ل. کوړ کېدل، کوړ ک کېدل، د چرګې هګۍ بس کېدل.

**کوټېشن** (k(ū,o)ṭešán) نر. م (تن.) د نقل ښښه، ناخونک، د تمیز ښښه؛ په لیک ښښو کې یوه علامه ده چې شکل یې داسې دی: « ».

**کوجرکي** (kojárkí) نر. ج. د شمزۍ بندونه، د ملا د تیر بندونه، دملا د هډوکي مورې (مهره).

**کوجکی** (kojakáy) ښځ. م. دوه واړه لرګي دي چې د اوبې د کتې په آخر کې کلک شوي وي.

**کوچ**(۱) (kwáč) جن. ناویلې یا د غوړیو لومړی توکی چې د پیو له شاربلو لاس ته راځي.

**کوچ**(۲) (kōč) نر. م ۱) لښته، لېږد بېدنه، کډه کول؛ ۲) کډه، د کور لوښي او سامان.

**کوچ**(۳) (kawč) ص. نر. م. ج. ۱) تش، ګوګ، ډډ؛ ۲) نر. م. سیټ، د ناستې اوږده چوکۍ.

**کوچ**(۴) (kūč) صوت. د سپي د رابللو اواز.

**کوچټ** (kūčáṭ) ص. نر. م. ووړوکی هلک، کوچنی هلک، کمکی، وړکی.

**کوچټتوب** (kūčaṭṭob) نر. م. کوچټوالی، ووړوکوالی، کوچنیوالی، وړکتوب.

**کوچخول** (kūčxól) نر. م. پټکی، لونګی، پګړی، پړګی، لمستنی.

**کوچکارل** (kučkarál) مص. مت. توتوکول، تیو تیو کول، راتو کول، د سپي رابلل.

**کوچکین** (kočkín) نر. م. ډېرینه مردکه، د تیږې کوچنی مردکی، د تیږې وړوکی ټیق.

**کوچلاغ** (kūčlāğ) نر. م. شپول، کېږ، سرخلاصې احاطه ده چې څاروي په کې دروي.

**کوچلانه** (kočlāná) ښځ. م. کوچلنه، کوچلنه، د کوچو تولولو لوښی.

**کوچ مال** (kočmál) نر. م. ۱) کوچ مهال، د کوچ (کډه کول) وخت؛ ۲) مزل، تګ.

**کوچنډ** (kūčand) نر. م. ۱) د ځناور بچی، د سپي کوتری؛ ۲) مج. بچی.

**کوچنډی** (kūčanḍáy) نر. م. ۱) کوچنډ؛ ۲) مج. ارمونی، حرامي، حرامزاده.

**کوچنوټی** (kočnoṭáy) نر. م. کمکی، کچنوټی، کوچنوټکی، کوچنی، وړوکی، ورکوټی.

**کوچنی** (kūčnáy) نر. م. ۱) کمکی، ماشوم، طفل؛ ۲) ص. نر. م. وړوکی، ورکوټی؛ ۱) په اندازه کې محدود؛ ۳) جزیي، بې اهمیته.

**کوچنیتوب** (kočnitób) نر. م. کوچنیوالی، وړوکوالی، ماشوموالی، ماشومتوب، وړکتوب، کوچنیواله.

کوټه کریابه (koṭákaryāba) ص. ښځ.م. ۱) دیدني، لرونکې ښځه؛ ۲) بدنصیبه، بدمرغه، محتاجه ښځه.

کوټې(۱) (kūṭe) ۱) د (لږ) له کلیمې سره د وروستاړي په توګه راځي؛ ۲) صوت. نر.م. اشه، د خره او کوټي د شړلو اواز.

کوټې(۲) (kwáṭe) ق. کوټه، ډېر، زیات، دلی.

کوټی(۱) (kūṭay) نر.م. کڅکی، کوڅکی، کورنګی، خرګندی، د خرې بچی، کوټرکی.

کوټی(۲) (koṭáy) نر.م. ۱) سر، د انسان او حیوان سر؛ ۲) کوپړی، د انسان دسرککری.

کوټی(۳) (kwaṭáy) نر.م. ۱) د لرګي کندو؛ ۲) تندی، تنده، وچولی.

کوټۍ (koṭə́y) ښځ.م. ۱) ماڼۍ، قصر؛ ۲) کور، تعمیر، مېنه، د پول د دواړو سرونو هغه جګ ځای چې په وچه کې وي او پول پرې ایږدي.

کوټیالۍ (kūṭyaláy) ښځ.م. ځانګړې لوښی یا پیاله ده چې زرګران زر په کې ویلې کوي.

کوټېدل (kwaṭedə́l) مص. ل. کوړ کېدل، کوړ ک کېدل، د چرګې هګۍ بس کېدل.

کوټېشن (k(ū,o)ṭeṣə́n) نر.م (تن.) د نقل نښه، ناخونک، د تمیز نښه؛ په لیک نښو کې یوه علامه ده چې شکل یې داسې دی: «».

کوجرکي (kojə́rki) نر.ج. د شمزۍ بندونه، د ملا د تیر بندونه، د ملا د هډوکي موري (مهره).

کوجکۍ (kojakáy) ښځ.م. دوه واړه لرګي دي چې د اوبو د کټې په آخر کې کلک شوي وي.

کوچ(۱) (kwáč) جن. ناویلې یا د غوړیو لومړی توکی چې د پیو له شاربلو لاس ته راځي.

کوچ(۲) (kōč) نر.م ۱) لښته، لېږد، لېږدېدنه، کډه کول؛ ۲) کډه، د کور لوښي او سامان.

کوچ(۳) (kawč) ص. نر.م.ج. ۱) تش، ګوګ، ډډ؛ ۲) نر.م. سیټ، د ناستې اوږده چوکۍ.

کوچ(۴) (kūč) صوت. د سپي د رابللو اواز.

کوچټ (kūčə́ṭ) ص. نر.م. وړوکی هلک، کوچنی هلک، کمکی، وړکی.

کوچنټوب (kūčaṭṭób) نر.م. کوچنوالی، وړوکوالی کوچنیوالی، وړکتوب.

کوچخول (kūčxól) نر.م. پټکی، لونګۍ، پګړۍ، پډګۍ، لمستنۍ.

کوچکارل (kučkarál) مص. مت. توتوکول، تیو تیو کول، راتو کول، د سپي رابلل.

کوچکین (kočkín) نر.م. ډبرینه مردکه، د تیږې کوچنی مردکی، د تیږې وړوکی تیق.

کوچلاغ (kūčlā́ğ) نر.م. شپول، کبړ، سرخلاصې احاطه ده چې ښاروي په کې دروي.

کوچلانه (kočlāná) ښځ.م. کوچلنه، کوچلنه، د کوچو تولولو لوښی.

کوچ مال (kočmā́l) نر.م. ۱) کوچ مهال، د کوچ (کډه کول) وخت؛ ۲) مزل، تګ.

کوچنډ (kūčand) نر.م. ۱) د ځناور بچی، د سپي کوتری؛ ۲) مج. بچی.

کوچنډی (kūčandáy) نر.م. ۱) کوچنډ؛ ۲) مج. ارمونی، حرامي، حرامزاده.

کوچنوټی (kočnoṭáy) نر.م. کمکی، کچنوټی، کوچنوټکی، کوچنی، وړوکی، ورکوټی.

کوچنی (kūčnáy) نر.م. ۱) کمکی، ماشوم، طفل؛ ۲) ص. نر.م. وړوکی، ورکوټی؛ ۱) په اندازه کې محدود؛ ۳) جزیي، بې اهمیته.

کوچنیتوب (kočnitób) نر.م. کوچنیوالی، وړوکوالی، ماشوموالی، ماشومتوب، وړکتوب، کوچنیواله.

**کوچوان** (kočwān) ص. نر.م. ګاډی وان، بګی والا، ټانګې والا.

**کوچومرغی** (kūčūmarğáy) ښځ.م. زېړانکه، ژېړانکه، ژړانګه؛ یوه زېړه مرغۍ ده.

**کوچه**(۱) (kawčá) ښځ.م. ۱) چمچه مار، منګور، مار، کبچه مار، منګری؛ ۲) یو ډول کاچوغه ده.

**کوچه**(۲) (kočá) ښځ.م. غنم او نور حبوبات چې په دېګ کې پخېږي.

**کوچه**(۳) (kūča) ښځ.م ۱) د خرو یو ډول ناروغي ده؛ ۲) رېښه، تیله.

**کوچي** (kūči) جن. کوچ، غوره ماده ده چې د مستو له شاربلو څخه لاس ته راځي.

**کوچی** (kočáy) ښځ.م. کوځی ۱) له لمڅي څخه جوړ شوی کوټ یا چپنه؛ ۲) یو رنګین توکر چې د هلکانو د کمیس په غاړه کې یې ګنډي.

**کوچی**(۱) (kočáy) ص.نر.م. (ج. کوچیان) ۱) پغونده، کډه په سر، هغه کډوال چې د ښارویو د روزنې او ساتنې د لارې خپل ژوند پرمخ بیایي؛ ۲) مج. پونده؛ ۳) نر.م. د پوندې د پاسنۍ برخې پله یا وژه؛ ٤) کوځی، کوتی، دخرې بچی؛ ۵) ښځ.م. توتکۍ، توتکرۍ، یوه توره مرغۍ ده.

**کوچی**(۲) (kūčay) نر.م. اد ک، مرنی، چیتی، چولی، لپانکی، پلنه تیره چې کوچنیان پرې په یوه پښه د چیتیو لوبه کوي.

**کوچیانی** (kočyānáy) ص.نر.م. د کوچي، د کوچیانو، د کوچي ګری، کوچي ته منسوب.

**کوچیتوب** (kočitób) نر.م. د کوچي د ژوند طرز او خصوصیات، کوچیاني ژوند.

**کوچېدل** (kočedál) مص. ل. ۱) الېږدېدل، کډه بارول؛ ۲) له یوه ځایه بل ځای ته کډه وړل.

**کوځړی** (kūǰŕáy) ښځ.م. یو نبات دی چې په غنمو کې راشین کېږي.

**کوځ** (kwáč) نر.م. ۱) د لرګیو پړی؛ ۲) د لرګیو او خځلو دلی.

**کوځر** (kawč(á,ó)r) نر.م. وزر؛ ۱) د مرغه وزر؛ ۲) ادانه، دوتنه، کانتی، پوښ، وقایه.

**کوځره** (kawčará) ښځ.م. کناوه، کوړمه، کوسړه، پنه.

**کوځک** (kawčák) نر.م. و ګ. کځوک.

**کوځکه** (kočáka) ښځ.م. کوځه، نانځکه.

**کوځکی** (kūčkáy) نر.م. کوتی، کوترکی، د خره بچی.

**کوځو** (kočáw) نر.م. د لمڅي چپنه یا کوټ چې لنډ لستوني لري.

**کوځه** (۱) (kwačá) ښځ.م. ۱) جالکی، په کوټه کې د نغري او چرګۍ خواته د لرګیو ایښودلو ځای؛ ۲) هڅه، هاند، کوښښ، زیار.

**کوځه**(۲) (kūčá) ښځ.م. ۱) چوله په کلي یا ښار کې د کورونو ترمنځ اوږده فاصله؛ ۲) جاده.

**کوځه**(۳) (kówča) ښځ.م. کوځی، کونځی، د ښځو د سر د ویښتانو کوځی.

**کوځه** (٤) (kóča) ښځ.م. و ګ. کوځکه.

**کوځه بندي** (kūčabandí) ښځ.م. د کوځي سر، د کوځي بام او پوښښ.

**کوځه دربه** (kucadrába) ص. نب. نر. ښځ.م. لړ، کوځه ګرده، ابله ګرده.

**کوځه ډبه** (kucadába) ص. نب. نر. ښځ.م. ج. ۱) لړ، کوځه دربه، کوځه ګرده، ابله ګرده؛ ۲) هغه سپی چې په کوځو کې ګرځي.

**کوځی** (kawčáy) ښځ.م. ج. کوځه، کونځی، چونټی، د ښځې د سر ویښتان چې درې درې پیلتې سره اودل شوي وي.

**کوخ** (kūx) نر.م. کوخک، قخک، کوخه، کوخۍ، په مقعد کې واړه واړه سپین چینجي دي.

**کوخۍ** (kūxáy) ښځ.م. یو وړه خزنده ده.

**کود** (۱) (kod) جن. و گ. کوډ(۱).

**کودالۍ** (kodāláy) ښځ.م. ۱) کوداله، کدالۍ، تسکوره؛ ۲) هغه توکرۍ چې خاورې وته په کې وابنه ایښودل کېږي.

**کودتا** (kūdatā́) ښځ.م. د «فتحې» یو شکل دی چې دهغه په ترځ کې ددولتي او نظامي مقاماتو په زور سره یو دولت نابېره تغییر کوي.

**کودرکی** (kawdárkay) نر.م. کودره، کودړۍ، کودۍ، کودونی، د مات خاورین لوښي ټوټه.

**کودړک** (kudaṛák) نر.م. شاتېنګه.

**کودړی** (kawdáṛay) نر.م. د مات خاورین لوښي ټوټه.

**کودن** (kawdán) ص. نر.م. ج. شوده، بېعقل، ساده، کم عقله، احمق.

**کودونی** (kawdū́ṇay) نر.م. و گ. کودړی.

**کوده**(۱) (kawdá) ښځ.م. قوده، موټی، غمچه، شست.

**کوده**(۲) (kodá) ښځ.م. ۱) د کاریز غاړه چې بوگه او خورینه شوې وي؛ ۲) جن. د غلو دانو کوم جنس دی.

**کودی** (kawdáy) نر.م. ۱) د خاورین لوښي ماته شوې غټه ټوټه؛ ۲) د کروسي زوی، د کروسي او پردي ترمنځ.

**کودیک** (kowdík) نر.م. یو ډول خاورین لوښی دی.

**کوډ** (koḍ) جن. ۱) کود، امبار، سره، پارو؛ ۲) نر.م. د قوانینو او مقرراتو جونګ؛ ۲) د هدایت او لارښوونې لپاره د اصولو او قواعدو مجموعه؛

۴) د سري لیکنې یو سیستم.

**کوډبېلی** (koḍbeláy) نر.م. بلانگوری، خرپاند، گوډه بلی؛ یو ډول مېږه ده چې په ونو کې اوسي.

**کوډخل** (koḍaxál) نرم. کوډغاله، کوډخه، کوډله، کوټخه، جونګړه، کوډۍ، کوډکه.

**کوډخه** (kūḍáxa) ښځ.م. ۱) کوډله، جونګړه، کوډخل، کوډۍ؛ په غرو کې له ډبرو او لرګو څخه جوړه شوې کوډله؛ ۲) دځنګله دساتونکو کوټه؛ ۳ مج. کوچنی او د غریبې کور.

**کوډر** (koḍár) نر.م. پاړه، چارۍ، ببل غونډې یوه فلزي آله ده خو تېکک نه لري.

**کوډغاله** (kūḍġ́āla) ښځ.م. و گ. کوډله.

**کوډکه** (kūḍáka) ښځ.م. ۱) کوډۍ، کوډنۍ، څپره، څپرۍ؛ ۲) کوډله.

**کوډگر** (koḍgár) ص. نر.م. کوډې کوونکی، ساحر، جادوگر.

**کوډل** (kūḍál) نر.م ۱) و گ. کوډله؛ ۲) مرغانچه، د چرگانو وړه کوټه.

**کوډلا** (kūḍlā́) ښځ.م. هغې پردې چې څوکسه یې د گرمۍ په وجه د چترۍ په څېر پر سرونو نیسي.

**کوډلوبی** (koḍlóbay) ص. نر.م. مداري، شعبده باز.

**کوډله** (kūḍála) ښځ.م ۱) کوډلۍ، کوډخه، کوډغاله کوډغلی، کوټخه، جونګړه؛ ۲) مج. کور، مېنه.

**کوډلۍ** (kūḍaláy) ښځ.م. ۱) کوډله؛ ۲) کوډۍ، څپرۍ، څپره.

**کوډوۍ** (koḍwā́y) ښځ.م. خاوري، خورۍ، کنډول، کنډولی، خاورینه کاسه.

**کوډه** (koḍa) ښځ.م. ۱) جادو، سحر؛ ۲) د غوزانو، مردکیو یا پیسو د جوارۍ کوټۍ.

**کوډهل** (kūḍhál) نر.م. کډل، کډۍ، ژور.

**کوډی**(۱) ( kūḍáy ) ښځ.م. جونګړه، څپره، څپری، له لوخو او ونو څخه جوړه شوې کوټه.

**کوډی**(۲) ( kawḍáy ) ښځ.م. کونجکه، هغه صدف چې د کوچنیانو په غاړه کې یې اچوي.

**کوډې** ( kóḍe ) ښځ.ج. کوډه، سحر، جادو.

**کوډی** ( koḍáy ) ص.نر.م. جادوګر، کوډګر.

**کوډیکه** ( koḍíka ) ښځ.م. پښانګه، پښنونګه، د ګوډي او مشک پښه.

**کور**(۱) ( kor ) نر.م. (ج. کورونه) ۱) مېنه، سرای، استوګنځی، حویلۍ؛ ۲) د یوې کورنۍ غړي؛ ۳) د یوه پخواني ټوکر نوم.

**کور**(۲) ( kūr ) صوت. نر.م. ۱) د چونګښې اواز؛ ۲) د مرز اواز.

**کور**(۳) ( kwar ) نر.م.ج. ۱) انګور، مېلوه؛ ۲) برابر، سم؛ ۳) نمجنه څمکه.

**کوراجی** ( korājáy ) ص. نر.م. کورنی، مقیم، کورغاری.

**کوراړی**(۱) ( kūrāṛay ) نر.م. کوچنی پټی.

**کوراړی**(۲) ( korāṛay ) نر.م. ۱) پر کور ناست، بېکار؛ ۲) څوک چې د برمتې په ډول بندي وي؛ ۳) کلابند؛ ٤) مج. بندي.

**کوراکور** ( korākór ) ص. نب. ق. ۱) کور په کور، په هر کور؛ ۲) بېل بېل کور، ځانګړی کور.

**کوربانه** ( korbāná ) ص.نر.م.ج. ۱) د کور خلک، د کوربه جمع؛ ۲) د کوربه متغیر حالت.

**کوربچه** ( korbačā ) ښځ.م. هغه نالي (توشک) چې اوږدوالی یې زیات او پسور یې لږ وي.

**کوربل** ( korbál ) نر.م. کوربله، نارې سورې، نریاد، نالښت او فریاد، واویلا، په رنګ ژړل.

**کوربنه** ( korbaná ) ص.ښځ.م. د مېلمنې متضاده، د کور خاونده، مېزبانه.

**کوربه** ( korbá ) ص.نب. نر.ښځ.م.ج. مېلمه پال، د کور خاوند، مېزبان.

**کورپچه** ( korpačá ) ښځ.م. کوربچه.

**کورپشا** ( korpašā ) ص.نر.م. کډه په سر، کوچی.

**کورپه** ( kūrpá ) ښځ.م. ۱) هغه شوتل او رشقه چې له ربېلو وروسته بیا راټوکېدلي وي؛ ۲) سرسری ربنه؛ ۳) ص. نب. کورپه وېښتان.

**کورت** ( kwrat ) جن. کرت، قرت، قروت.

**کورتاژ** ( k(ū,o)rtā́ž ) نر.م. اص. د زېلان (رحم، زهدان) تراشل او پاکول.

**کورتک** ( kwarták ) نر.م. قرتک، کرتک، اوګره، اتوب.

**کورت کانی** ( kwaratkā́ṇay ) نر.م. یو راز سپین غونډ او کلک کانی دی.

**کورت ماچې** ( kwaratmāčé ) جن. آشک، آش.

**کورتوبه** ( kūrtobá ) ښځ.م. و.ګ. رخپین.

**کورتی** ( k(ū,wa)rtáy ) ښځ.م.ج. کوټ، کرتی، یو ډول لستوڼي لرونکی لباس دی.

**کورتې** ( kūrté ) صوت. ښځ.م. پسونو او مېږو ته د اوبو ورکولو او څښلو په وخت کې یې وایي.

**کورتین** ( kwratín ) ص. نرم. د کرتو، د کورتو، د قرتو، له کورتو څخه جوړ.

**کورټ** ( kūrā́ṭ ) ق. کرټ، هېڅ، بالکل، قطعاً، له سره، هیڅکله.

**کورجی** ( kūrajā́y ) نر.م. کرج، کرچ، زوړ باز.

**کورچوړ** ( korčā́wṛ ) ص. نرم. بې کاره، خراب، له کاره وتلی.

**کورچوړی** ( korčwā́ṛay ) ص. نر.م. کورډاګی، کورخوری، کورګډی، کورورانی.

**کورخراپی** ( korxarā́pay ) نر.م. ۱) و.ګ. کورچوړی؛ ۲) پېلاتي؛ ۳) تکړه، ماهر.

**کورخوری** (korxōray) ص. نر.م. و گ. کورچوړی.
**کورخه** (kurxá) ښځ.م. فاسولیا، فاصلیه، یو ډول پلې دي چې د کتغ په توگه پخېږي.
**کورداتا** (kordātá) نر.م.ج. فقاریه حیوانات، شمزی‌لرونکي.
**کورداري** (kordārí) ښځ.م. ۱) کوروالی، د مېړه او مایني جنسي اړیکي؛ ۲) د کور چارې.
**کورډره** (kordārá) ښځ.م. نرۍ لاره چې په کښت کې تللې وي.
**کورډ** (kord) نر.م. (مو.) ۱) اکورډ، اکرډ، اکور، اکر، هارموني؛ د درو یا څو ټونو (صوتو، سُرو) یوځای کول؛ ۲) د یوې موسیقیزې آلې تار.
**کورډاگی** (kordāgay) ص.نر.م. و گ. کورچوړی.
**کورډیپلوماټیک** (kordiplōmatík) نر.م. ډیپلوماټیک هیئت، د بل هېواد په پلازمېنې کې د یوه هېواد د سیاسي استازو پلاوی.
**کورډېټ** (kordet) نر.م.ج. فقاریه حیوانات، شمزی‌لرونکي.
**کوړا** (kūrra) ښځ.م. د چونگښې اواز.
**کوړېدل** (kūrredəl) مص. ل. ۱) دځینو الوتونکو بړغ او ناري کول؛ ۲) کولېدل، رغړېدل.
**کورزو** (kūrzo) ښځ.م. کیې، د بوټو ایستلو یو ډول ترښځ ډوله آله ده.
**کورزومی** (korzūmay) نر.م. هغه زوم چې له واده وروسته دخپل خسرکره اوسېږي.
**کورس**(۱) (k(o,wá)rs) نر.م. ؛ د ځینو علومو یا د علم د یوې څانگې د تدریس ځای.
**کورس**(۲) (korás) نر.م. (مو.) ۱) ډله ییزې بدلې، ډله ییزې سندرې؛ ۲) آرکستر.
**کورس**(۳) (kwárs) نر.م. ول‌ول وینښتان، گوړگوټې وینښتان، مجعد وینښتان.

**کورسپېری** (korspéray) ص. نر.م. هغه څوک چې کور یې له شتمنۍ سره برباد شوی وي.
**کورسوځل** (korswajál) مص. مت. کورسېځل، په قبیلوي ټولنه کې یو ډول سزا ده. دا هغه چاته ورکوي چې په لویو قومي پرېکړو کې له ټاکلو حدودو څخه تېری وکړي.
**کورشکی** (koršakáy) ښځ.م. (لو.) کورگیانی، کرسکی، د وړو نجونو اوهلکانو یوه لوبه ده.
**کوربښکی** (kūrəṣkay) نر.م. یو ډول معدني سره خاوره ده چې خاورین لوښي پرې رنگوي.
**کورغ** (kwrağ) نر.م. ۱) یو ډول تریخ غرنی بوټی دی؛ ۲) څاروي چې له کښت څخه منع شي.
**کورغاری** (korğāray) ص. نر.م. کوراجي ته منسوب، له جهانه بې خبر.
**کورغالی** (kurğālay) نر.م. ورکوټی پټی چې د نورو پټیو په منځ کې وي.
**کورغنډل** (korğandál) نر.م. قارغندل، کارغندل یو اغزن بوټی دی.
**کورغوچو** (kurğucū) نر.م. (لو.) کورغوچونی، د کوچنیانو یوه لوبه ده.
**کورغول** (korağawál) مص. مت. قرغ کول؛ ۱) انحصارول؛ ۲) له کښت څخه څاروي منع کول.
**کورغی** (kūrğay) نر.م. ۱) سونگی پسه، بونډی گډ، بوچی پسه؛ ۲) کورغالی، وړوکی پټی.
**کورغېدل** (korağedál) مص. ل. قرغ کېدل؛ ۱) انحصارېدل؛ ۲) له کښت څخه څاروي منع کېدل.
**کورک**(۱) (korák) نر.م ۱) پوچ حبوب؛ ۲) کوچنی انار؛ ۲) لویه خمبه. لوی کندو.
**کورک**(۲) (k(ū,o)rk) نر.م. یو ډول توکر دی چې دوزو له وژغنو څخه په لاس جوړېږي.

ک ور

**کورکشه** (korkaṡā́) ښځ.م. د چرګې لومړنۍ هګۍ.

**کورکمن** (kūrkamán) جن. کرکومن، کورکمند، کورکمان، یو ډول نبات دی.

**کورکوډې** (kūrkū́ḍe) ښځ.م. یوه ښکلې زرغونه مرغۍ ده.

**کورکوډۍ** (korkūḍáy) ښځ.م. کوتخه، کوډله، کوډۍ، د غریبۍ کور.

**کورکور** (kūrkū́r) صوت. نر.م. ګړاری، د چلم د ځکولو اواز؛ د کوتې د رابللو اواز.

**کورکورکه** (kūrkūráka) ښځ.م. کورکورۍ، یو ډول پاختکه ده چې رنګ یې سوربخن دی.

**کورکوری** (kūrkūráy) نر.م ۱) چیچکي، چخچنی، قوتي مخی؛ ۲) میده خښته چې مسګران پرې خیرن لوښي پاکوي؛ ۳) کورکورۍ، یو ډول مرغه دی چې کورکوړ کوي.

**کورکورۍ** (kūrkūráy) ښځ.م. هغه ځمکه چې اوبه نه جذبوي او ژر بخونه سپینه خاوره لري.

**کورکوړ** (kūrkū́ṛ) نر.م. د کورکوري اواز.

**کورکوړی** (kurkū́ṛay) نر.م ۱) وګ. کرکوری؛ ۲) (لو.) خانې خانې، د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**کورکوړۍ** (kūrkūṛay) ښځ.م. کورکوړکه، یوه خړه شناورګې یا سور بخنه مرغۍ ده.

**کورکوڼايي** (kūrkūṇāyi) جن. یو ډول سابه دي چې د خوړو لپاره یې پخوي.

**کورکوڼی** (kūrkū́ṇay) نر.م. د کاسني په څېر یو زهرجن نبات دی، اوبه یې د کوخکو ضد درملو په توګه اماله کوي.

**کورکه** (koráka) ښځ.م. (ج. کورکی) کورک، پوچ حبوب، د جوارو دانه چې پولۍ نه شي.

**کورکی**[1] (korakáy) نر.م. کورګی، وړوکی کور.

**کورکی**[2] (korákay) نر.م. ۲) کوشي، کوتي، کوتانی، کوترکی؛ ۳) هغه پتنې او لرګي چې د یوې دایرې په ډول اېښودل کېږي او بیا اور وراچوي.

**کورکی**[3] (kūrkáy) نر.م. ج. ۱) کورهار، د چلم د ځکولو اواز؛ ۲) رغی ځاه، لږ ژور کوهی؛ ۲) د کښت په منځ کې کاریز کوچنی رغی ځاه.

**کورکیانی** (korkyānáy) ښځ.م. وګ. کورشکی.

**کورګډی** (korgáḍay) ص. نر.م. ۱) کونډ، ښځه مړی، د چا چې ښځه مړه شوې وي؛ ۲) د خلکو کور خرابوونکی.

**کورګوټ** (korgwáṭ) ص. نر.م. تاوراتاو، کوږ وږ.

**کورګی** (korgáy) نر.م. وړوکی کور، د کور مصغر.

**کورګیري** (korgiri) ښځ.م. ګاونډیتوب، همسایګي د ګاونډیتوب په دود پوهېدنه او د هغه پالنه.

**کورلنډی** (kūrlánḍay) نر.م. (ج. کورلنډي) د یوه ډانګ یا لرګي په سرکې د پړې یوه کړۍ اچوي چې نا اشنا سپي پرې مهاروي او بیايي یې.

**کورلی** (kūrláy) ص. نر.م. لنډی بوچی خر، هغه خر چې غوږ او لکۍ یې پرې وي.

**کورلۍ** (kūrláy) ښځ.م. میتی، ملته، ببډس، هغه سپښته چې سر یې مات یا نیم وي.

**کورمښت** (kormā́ṣt) نر.م. ۱) سترګې مړل، په سترګوکې سوک مړل؛ ۲) له درده تاو راتاو کېدل.

**کورمانه** (kormānā́) ص. ښځ.م. د کور واکداره، د کور مېرمن.

**کورمک** (kūrmák) ص. نر.م. تپ تپپ، د ناروغۍ او کمزورۍ له امله بې دمه او ډنګر (سړی).

**کورمکې سترګې** (kūrmákestarge) ښځ.م. تنګې او سره نتوتې سترګې.

**کورمنگ** (kūrmáng) نر.م. وګ. کرمنګ.
**کورناست** (kornast) متقاعد، خانه‌نشین.
**کورنځی**[1] (koranǰáy) ښځ.م. کمزوري، ناتواني، ضعیفي، کراکندي، تر ناروغی وروسته کمزوري، نقاهت.
**کورنځی**[2] (kuranǰáy) ښځ.ج. د یوه لوی غم او مصیبت له امله په رینګتې ژړل.
**کورنډه** (kūránḍa) ښځ.م. د شپیشتو او نورو شیانو له ربېلو نه پاتې شوی ښخ.
**کورنډی** (kūranḍáy) ښځ.م. هغه کخوره چې د بزګر د بیوې سامان په کې وي.
**کورنګ** (kūrang) ص.نر.م. کورنګی، کرنګ، سوربخن اس.
**کورنګی** (kūrangáy) نر.م. کوځی، کوتی، د خرې بچی.
**کورنی** (koranáy) ص.نر.م. کورن، دکور، خانګي، په کور اړوند.
**کورنۍ** (koranáy) ښځ.م.ج. کورمه، کهول، خاندان، خېلخانه، فامیل.
**کورنېټ** (kornét) نر.م. یوه پوکېدونکې موسیقیزه آله ده چې د ترمپیټ پر کورنۍ اړه لري.
**کورواکی** (korwākay) ص.نر.م. د کور واکدار، هغه چې په کورنیو چارو کې آزاد وي.
**کوروالا** (korwālā́) ص.نب.نر.ښځ.م. ۱) متاهل؛ ۲) دکور څښتن یا خاوند.
**کوروالی** (korwálay) نر.م. کورواله، کوروالی، د مېړه او ښځې جنسي مناسبات.
**کورودانه** (korwadā́na) ښځ.م ۱) مج. ماندینه، ماینه، اورته، ښځه، کورودانې؛ ۲) منننه، خوښنه، تشکر، شکریه، خوښي کول.
**کورودانې** (korwadā́ne) ښځ.ج.م. وګ. کورودانه.
**کورورانوونکی** (korwrānawúnkay) نر.م. څوک چې دیوه کور یا کورنۍ یاکلي خلک په خپلو منځو کې سره جنګوي.
**کورورانی** (korwránay) ص.نر.م. وګ. کور ورانوونکی.
**کوروراني** (korwrā́ni) ښځ.م ۱) مج. د چا مېرمنه مړه کېدل؛ ۲) بې اتفاقي؛ ۳) له شتو (مال) څخه خلاصېدنه.
**کوروسر** (kór(u,o)sár) ق. له هره کوره، د کور پر سر، د ګډ کار لپاره د وسایلو یا د مرستې یو معیار دی.
**کوروکورو** (kūrūkūrū́) صوت. نر.م. کورکور، د خره او خرې د رابللو اواز.
**کوروکهول** (kór(o,ū)kahól) نر.م. ۱) کور او کورنۍ؛ ۲) کور او ټبر.
**کورول** (korawál) مص. مت. ۱) تتول، تت کول، بې ځلا کول؛ ۲) مج. باطلول.
**کوره**[1] (korá) ص. نب. ۱) باطل، مردود؛ ۲) تت ۳) شډل، څیړ؛ ٤) ښځ.م. نوی خاورین لوښی.
**کوره**[2] (kawā́ra) ښځ.م. کوری، کومبر، بډه اوبس، یو ډول غرنی حبوب دی.
**کوره**[3] (kūrá) ښځ.م. بټۍ، دابس، داش.
**کورهار** (kūrahā́r) نر.م.ص. د چلم څکولو پر له پسې اوازونه یا دڅونګښې اوازونه.
**کوره کی** (kōrákay) حجره، سلول.
**کوری**[1] (kwáray) نر.م. ۱) یو ډول اغزن بوټی دی؛ ۲) ترنګړ، ترنګړ؛ ۲) کتبهزی، پوزکی؛ ۳) لیکې لرونکې غټه مشکنه، رګداره مرۍ؛ ٤) یو ډول خوندور نبات دی.
**کوری**[2] (kōray) نر.م. نمکداني، د میده مالګې لوښی.

**کوری**(۳) (kawráy) نر.م. د جوارو او نورو شیانو درمند.

**کوري** (kwáre) صوت. ښځ.م. چخه، چخې، کوتې، د سپي د شړلو اواز.

**کوري** (kūrí) ښځ.م ۱) یو ډول پسته ځرمني گاوله؛ ۲) دختیک اوږد او هوار مخ، دختی مقابل لوری.

**کوری**(۱) (kūráy) ښځ.م. ۱) ډبری؛ ۲) دلی؛ ۳) وړه غونډی.

**کوری**(۲) (kawaráy) ښځ.م. لوغو، دکی، ډیبی، لوغی، خاورین لوښی چې غوا په کې لوشي.

**کوریځ** (kūríǰ) نر.م. کریځ. کریز. کووریز، بنکې تو.ونه، مرغان چې خپلې زړې بنکې تویې کړي.

**کوریر** (kūriyár) نر.م. ۱) ځانگړی پوسته وړونکی؛ ۲) هغه ډیپلومات چې د خپل هېواد مراسلې او پیغامونه د باندېني هېواد ته وړي.

**کوریز** (kūréz) نر.م. و گ. کوریځ.

**کوری غم** (kurigắm) نر.م. کورغم، د کور پر سر غم (مالیه).

**کوریلی** (kūreláy) نر.م. د ځرمنې سینه بند چې د سینه بغل ناروغ ته وراغوستل کېږي.

**کوړ**(۱) (kūṛ) صوت. نر.م. ۱) کوړ کوړ، چړ، د اوبو د تویېدو اواز؛ ۲) دمعدې غُرغُر.

**کوړ**(۲) (kwáṛ) نر.م ۱) د شوملو په چاتی پرته تخته چې په سوري کې یې مندانو ځرخېږي؛ ۲) کهر؛ ۱) پړنگ، خوراړه، جذام؛ ۲) برگ، پېس.

**کوړ**(۳) (kōṛ) ص. نر.م. ۱) کړوپ، راکوز، راکښته؛ ۲) راځوړنده، راکوړی؛ ۳) البرې، ایسته.

**کوړازغی** (koṛāzğáy) نر.م. یو ساراني اغزن نبات دی چې اوښ یې خوري.

**کوړاغ**(۱) (koṛắğ) نر.م. کوراغ، تبخ، تبک، تبق، د ځارویو یوه ناروغي ده.

**کوړاغ**(۲) (kwaṛắg) نر.م. کارگه، کاغه، وراغ.

**کوړاکوړا** (koṛākoṛắ) ص. نر.م. کووړغ کووړغ برېتونه، چنگ چنگ یا تاو تاو برېتونه.

**کوړت** (kwaṛát) نر.م. د کوړکې چرگې کوړتا.

**کوړتک** (kūṛták) نر.م. ۱) اوماچ، یو ډول خواړه دي؛ ۲) اتوب، قورتک.

**کوړته** (kṓṛta) ق. کښته، کوز، لر، ښکته.

**کوړچ** (kūṛáč) نر.م. په بیدیا یا دښته کې ترځمکې لاندې د کښېناستو پټ ځای.

**کوړچالی** (kūṛčāláy) نر.م. پتاته، کچالو.

**کوړځ** (kūṛác) نر.م. گاش، پنډ غالی، شپولغالی.

**کوړکوړی** (kūṛkūṛáy) ښځ.م. کوړ کوړی، سره کښی، موسیچه، خړه سوربخنه مرغی ده.

**کوړکه** (kuṛáka) ص. ښځ.م. چرگه، هغه چرگه چې هگۍ اچوز سس کړي.

**کوړکی** (kūṛkáy) ښځ م. ۱) کړکومه، د مرغیو نیولو یوه آله ده؛ ۲) دوه ښاخیز لرگی چې وابنه په کې وړل کېږي؛ ډوگر.

**کوړکی** (kūṛakáy) نر.م. ورکوټی پتی، کوچنی کروندہ.

**کوړم** (kwṛám) نر.م. ۱) ډېم، ډب، ولاړې اوبه؛ ۲) ډنډ، تالاب، جوور؛ ۳) په غریزه سیمه کې بند او سخت ځای چې لار ونه لري.

**کوړم گی** (kwṛámgáy) نر.م. کوچنی طبیعي ډنډ یا حوض، د کوړم مصغر.

**کوړمن** (kwaṛmán) نر.م. ۱) کړمن، رنځور، ناروغه؛ ۲) دپم او خارښت په رنځ رنځور.

**کوړمه** (koṛmá) ښځ.م. کورنی، کهول، خاندان، خېلخانه، فامیل، ربغر، ال اولاد.

**کوړنج** (kwṛánj) نر.م. کړانج، کوړنج، کوړنجی، دضربې واردولو په وخت د سپي اواز.

کوړنچا (kwṛančá) ښځ.م. صوت. کـوړنچي، کـ نجا، د سپي د وهلو په وخت اوازونه.

کوړنچ ل (kwṛančawә́l) مص.مت. کـړونچول، په وهلو سره د سپي له خولې کوړنچا ایستل.

کوړنچېدل (kwṛančedә́l) صـوت. مـص. ل. کړونچېدل، د وهلو په اثرد سپي کوړنچا وتل.

کوړنګ (kawṛáng) ص. نـر.م. ډنـګ، ډینـګ، هغه سړی چې ونه یې جګه او کړه وړه وي.

کوړول[1] (kūṛawә́l) مص. مت. له چلم او... ثخـه کوړاری ایستل.

کوړول[2] (koṛawә́l) مص. مت. ځړول، ځوړندول، کوړیول.

کوړوی (kūṛwáy) نر.م ۱) کوړی، داوړي ثلورمه، د غنمو د پیمانې کـولـو لوښی چې یو کیلوګرام غنم نیسي؛ ۲) د لوخو وړه ټوکری.

کوړه[1] (kawṛá) ص. نب. ۱) ناغیجن، جنجالي او کج بحثه سړی؛ ۲) ښځ.م. خخلې، خاشه.

کوړه[2] (kwaṛá) ښځ.م. خره (xara)، دلی، کوټه، خرې، ډېر شیان چې سره غونډ شوي وي.

کوړه[3] (koṛá) ښځ.م ۱) د مړد کیو لویه؛ ۲) یو ډول غرنی اغزن بوټی دی؛ ۳) ص.نب. پېچلی.

کوړی[1] (kūṛáy) نر.م. و ګ. کوړوی.

کوړی[2] (káwṛay) نر.م. چتهو، د لرګي اونګ، د. لرګي بغری.

کوړی[3] (koṛáy) نـر.م. ۱) خوسکی، خوسی؛ ۲) خوسا او چینجـن تېپ؛ ۳) یوه غـرنـۍ ونـه ده؛ ٤) دلی، انبار.

کوړی[4] (kūṛay) نر.م. کوړ، جذام.

کوړۍ[1] (kūṛáy) ښځ.م. ۱) د کـوچني درمـندګي دلی؛ ۲) داوښ د زنګانه بند؛ ۳) ډمبره ،ټمتاکه، تنډه غالبوزه؛ ٤) هغه لـرګی چې قصابان پرې غوښه ټوک ټوک کوي؛ ٥) ص.ښځ.م. منجیله، د مار د تاو راتاو پروتوالي حالت.

کوړۍ[2] (kawṛáy) ښځ.م. ۱) دینار، پیسه، حبه؛ ۲) یو ډول ساراني سابه دي.

کوړۍ[3] (koṛáy) ښځ.م ۱) شل تیران یا دستکې؛ ۲) دوریښمو او ګلابتونو یو ډول ګنډوږ دی چې په خولۍ کې کېږي.

کوړۍ[4] (kūṛáy) ښځ.م. کوړمه، فامیل، کورنۍ.

کوړیت (kūṛit) ص. نـر.م. ۱) منجیلـه شـوی؛ ۲) کوت شوی، ګونځې شوی.

کوړېدل[1] (kūṛedә́l) مص.ل. قـوړېدل، د چلم له څکلو کوړاری وتل.

کوړېدل[2] (koṛedә́l) مص. ل. ځوړندېدل، ځړېدل، کوړیېدل.

کوړۍ کوړۍ (koṛáykoṛáy) ښځ.م. ۱) دناغوبل شـو غنمـو واړه واړه درمـنـدونه؛ ۲) د سوارو (دروزو) وړه دلی؛ ۳) ص. نر.م. ج. پېچ پېچ، تاو راتاو.

کوړیکه (kūṛika) ص. ښځ.م. م. کـوړکه، کړوکه (چرګه).

کوړینګ (kūṛing) ص.نر.م. جګ او راکړوپ شوی سړی؛ جګ سړی چې اوږدې یې راوتلې وي.

کوړینګېدل (kūṛingedә́l) مص.ل. ۱) راکړوپېدل ۲) راکړېدل.

کوز (kūz) ق. ۱) لاندې، کښته؛ ۲) ص. نـر.م. ج. ښکته، لر، کوږته.

کوزده (kozdá) ښځ.م. کوژده، کـوژدن؛ دسمال ورکول، شیریني خوري، نامزاده کېدل.

کوزرګۍ (kūzaṛgáy) ښځ.م. وړه کوزه.

کوزړۍ (kūzaṛáy) ښځ.م ۱) وړه کوزه، کوزرګۍ؛ ۲) د ښشکې په څېر یو ډول سابه دي.

**کوزسترګی** (kūzstárgay) ص. نر. م. خړ، ملامت، شرمېدلی، کوزګوری، ټيټ سترګی.

**کوزغالی** (kūzǧálay) نر. م. کپړی، کوژغالی، کورنی، د خاورين لوښي ماته ټوټه.

**کوزګوری** (kūzgóray) ص. نر. م. خړ، ملامت، شرمېدلی، ټيټ سترګی.

**کوزموګرافي** (kozmogrāfí) ښځ. م. دنړۍ يوه عمومي تشريح يا څرګندونه.

**کوزميک** (kozmík) نر. م. ۱) په کازموس (کاينات، د وجود د عالم نظام) اړوند؛ ۲) له ځمکې پرته په کايناتو مربوط.

**کوزنی** (kūzanáy) ص. نر. م ۱) کښتنی، لاندېنی؛ ۲) لرنی، کوږتنی.

**کوزوالی** (kūzwálay) نر. م. لاندې والی، ښکته والی، کښته والی، کوږته والی.

**کوزوپاس** (kūzopás) نر. م. ۱) ټيټ و پاس، پورته و کښته؛ ۲) غوړه مالي.

**کوزول** (kūzawál) مص. مت. ۱) کښته کول، کښېباسل؛ ۲) مج. رااچول، راغورځول.

**کوزه** (kūzá) ښځ. م. (ج. کوزې) مسين يا خاورين لاستی لرونکی يا بې لاستي لوښی دی.

**کوزۍ** (kūzáy) ښځ. م. وړه کوزه، کوچنۍ کوزه.

**کوزيانه** (kūzyána) ښځ. م. د خسر کورنۍ ته د زوم وروستل او معرفي.

**کوزېدل** (kūzedál) مص. ل. ۱) کښته کېدل؛ ۲) راغورځېدل.

**کوژده** (koždá) ښځ. م. و ګ. کوزده.

**کوژه** (kožá) ص. نب. بوزه؛ روژه خوړونکی.

**کوږ** (koẓ) ص، نر. م. (ج. کاږه) ۱) خم، اريب؛ ۲) مج. منحرف، بدقوله؛ ۳) نر. م. کوږبل، تي لرونکی حيوان دی، ايرن رنګ لري.

**کوږبل** (koẓbál) نر. م. و ګ. کوږ(۳).

**کوږدنه** (koẓdána) ښځ. م. کوژدنه (کوژده).

**کوږسترګی** (koẓstárgay) ص. نر. م. چغر، چيک، کاږينګ، کږسترګی، بهنګا.

**کوږل**(۱) (koẓál) مص. مت. ۱) د څاروي پوستکی ايستل؛ ۲) کالي کښل؛ ۳) بهر کول.

**کوږل**(۲) (kūẓál) مص. ل ۱) ربړ ګالل، زيار کاږل؛ ۲) حرکت کول، کوږېدل؛ ۳) مص. مت. حلالول.

**کوږمغزی** (koẓmáǧzay) ص. نر. م. بدمغزی، بدخويه، تندخويه.

**کوږنرخ** (kóẓnárx) نر. م. (پ. ک.) کله چې په جرګه کې د يو چا پرضد د ولس له قانون (نرخ) څخه مخالفه پرېکړه وشي، دې ته کوږنرخ وايي.

**کوږنګوری** (koẓangúray) نر. م. تره، چمبرخيال، يو ډول سابه دي چې اوږده او تاو تاو وي.

**کوږوالی** (koẓwálay) نر. م. کږوالی، کوږتيا، کږتيا، اريبوالی.

**کوږوکينې** (koẓokíṇ) نر. م. ج. ۱) کوږووږ، د کږو او ناسمو اندامو خاوند؛ ۲) منحرف.

**کوږول**(۱) (koẓawál) مص. مت. و ګ. کږول.

**کوږول**(۲) (kūẓawál) مص. مت. ښورول، خوځول، څنډل، څنډول.

**کوږووږ** (kóẓwóẓ) ص. نر. م. (ج. کاږه واږه) و ګ. کوږوکينې ۱).

**کوږه** (kwaẓá) ښځ. م. هاند، زيار، کوښښ، ربړ.

**کوږېدل** (kūẓedál) مص. ل. خوځېدل، ښورېدل.

**کوس**(۱) (kwás) نر. م. د ښځينه جنس فرج (تناسلي آله).

**کوس**(۲) (kwas) نر. م. خوګ، کوږ، خنزير.

**کوس**(۳) (kūs) نر. م. (مو.) کوست، ډول، لوی طبل.

**کوستېزن** (kwastezán) ص. نر.م. دووس، دله.

**کوسره** (kawsará) ښځ.م. (ج. کوسرې) کوسره، کوځره، پنه، کپې، موچنه.

**کوسري** (kawsā́ri) ښځ.م. شنې، شنی، تیتاقې، د خنجک او شنی د ونې مېوه.

**کوسرې** (kwasrā́y) ص. ښځ.م.ج. کاسیره، فاحشه: ۱) بد اخلاقه ښځه.

**کوسړه** (kawsaṛá) ښځ.م. کوسره: پنه، موچنه.

**کوسمیک** (kosmík) نر.م. و.گ. کوزمیک.

**کوسنگ** (kawsáng) نر.م. کوسنگې، درمند چې واخیستل شي یو څه غنم په آخر کې پرېږدي او دغه غنم په کوچنیانو او خوارانو وېشي.

**کوسه** (kosá) ص. نر.م.ج. څوکړ، کوڅه، چوکړ، هغه سړی چې ږیره یې رنگړې وي.

**کوسی** (kosáy) نر.م. (ج. کوسي) کوڅی، گنډی، هغه کوڅو چې له لمڅي څخه جوړ شوی وي.

**کوسی** (kawsáy) نر.م. د لمسي لمسی.

**کوشالی** (košālā́y) نر.م. کورشالی، د کوناټي هډوکی.

**کوشتوړی** (kūštūṛā́y) ښځ.م. هغه هندوانه چې تر نورو هندوانو وروسته پخېږي او کوچنۍ وي.

**کوشش** (košíš) نر.م. و.گ. کوښښ.

**کوشک** (košák) نر.م. کُشک، برجل مانۍ، لوړه ودانۍ.

**کوشکن** (koškán) نر.م. دالېز، دهلېز، دخونې یا خونو مخې ته دالیز.

**کوشېر** (kawšér) نر.م. پیوند: ۱) مات فلزي شی چې په قلعي سره بېرته پیوند شي: ۲) هډوکی چې مات شوی وي او بېرته جوړ شي.

**کوشېرول** (kawšerawə́l) مص. مت. پیوندول، فلزي شی یا مات هډوکی بېرته جوړول.

**کوشېرېدل** (kawšeredə́l) مص.ل. پیوندېدل، فلزي شیان، هډوکي... بېرته سره پیوندېدل.

**کوښار** (kawṣā́r) نر.م. چمیار، موچي.

**کوښت** (kweṣt) نر.م ۱) د بړستنې کوت: ۲) درز، چاک، چاود: ۳) غولی، دغادر غولی چې وابنه او پانې په کې اچوي.

**کوښته** (kosṭá) ښځ.م. جاده، لوی سړک، خیابان.

**کوښښ** (koṣáṣ) نر.م. (ج. کوښښونه) زیار، هڅه، هاند، خواري، کوړه، کوشش.

**کوښښي** (koṣaṣí) ص. نب. نر. ښځ.م. کوششي، خواریکښ، زیارکښ.

**کوښکه** (۱) (kawṣáka) ښځ.م. لینگته، د پالواني یو چال دی.

**کوښکه** (۲) (kawṣáka) ښځ.م. لرگین موړی چې په دېوال کې یې وهي او څاروي پورې تړي.

**کوښل** (kūṣə́l) مص. مت. کښل، لیکل، لیک کول.

**کوښه** (kā́wṣa) ښځ.م. (ج. کوښې) ۱) د ښځو پنه، د ښځو پیزار: ۲) دوه خوښې، د بار تړلو کوږ لرگی دی چې د پړي په سر کې یې تړي.

**کوغ** (kwağ) نر.م. ۱) غټه چونگښه: ۲) ص. نر.م. کړوپ، کوپ، توغ، پر ملا کړوپ.

**کوغاټی** (koğā́ṭay) نر.م. و.گ. کوغالی.

**کوغالی** (koğā́lay) نر.م ۱) دوغل، ورغالی، د سپي لرگین لوښی: ۲) کوډله، جونگره: ۳) ښوڅی، ژغوری، جرغالی: ٤) مج. غونډ او گردی لوښی.

**کوغلغل** (kūğalğál) نر.م.ج. د کنه ورغې او نورو غوښه خورونکو مارغانو د شړلو اواز.

**کوغې سترگې** (kūğestə́rge) ښځ.ج. ننوتې سترگې، لوېدلې سترگې.

**کوستېزن** (kwastezán) ص. نر. م. دووس، دله.

**کوسره** (kawsará) ښځ. م. (ج. کوسرې) کوسړه، کوځره، پنه، کپی، موچنه.

**کوسري** (kawsári) ښځ. م. شنې، شنی، تیتاڅي، د خنجک او شنی د ونې میوه.

**کوسری** (kwasráy) ص. ښځ. م. ج. کاسیره، فاحشه؛ ۱) بد اخلاقه ښځه.

**کوسړه** (kawsará) ښځ. م. کوسره؛ پنه، موچنه.

**کوسمیک** (kosmík) نر. م. و گ. کوزمیک.

**کوسنگ** (kawsáng) نر. م. کوسنگي، درمند چې واخیستل شي یو څه غنم په آخر کې پرېږدي او دغه غنم په کوچنیانو او خوارانو وېشي.

**کوسه** (kosá) ص. نر. م. ج. څوکړ، کوڅه، چوکړ، هغه سړی چې ږیره یې رنگړې وي.

**کوسی** (kosáy) نر. م. (ج. کوسي) کوڅې، گنډی، هغه کوڅو چې له لمخي څخه جوړ شوی وي.

**کوسی** (kawsáy) نر. م. د لمسي لمسی.

**کوشالی** (košāláy) نر. م. کورشالی، د کوناتي هډوکی.

**کوشتوړی** (kūštūṛáy) ښځ. م. هغه هندوانه چې تر نورو هندوانو وروسته پخېږي او کوچنۍ وي.

**کوشش** (košíš) نر. م. و گ. کوښښ.

**کوشک** (košák) نر. م. کُشک، برجل مانۍ، لوړه ودانۍ.

**کوشکن** (koškán) نر. م. دالېز، دهلېز، دخونې یا خونو مخې ته دالیز.

**کوشېر** (kawšér) نر. م. پیوند؛ ۱) مات فلزي شی چې په قلعي سره بېرته پیوند شي؛ ۲) هډوکی چې مات شوی وي او بېرته جوړ شي.

**کوشېرول** (kawšerawə́l) مص. مت. پیوندول، فلزي شی یا مات هډوکی بېرته جوړول.

**کوشېرېدل** (kawšeredə́l) مص. ل. پیوندېدل، فلزي شیان، هډوکي... بېرته سره پیوندېدل.

**کوښار** (kawṣā́r) نر. م. چمیار، موچي.

**کوښت** (kwəṣt) نر. م ۱) د برستنې کوت؛ ۲) درز، چاک، چاود؛ ۳) څولی، دڅادر څولی چې واښه او پانې په کې اچوي.

**کوښته** (kosṭá) ښځ. م. جاده، لوی سړک، خیابان.

**کوښښ** (kosə́ṣ) نر. م. (ج. کوښښونه) زیار، هڅه، هاند، خواري، کوړه، کوشش.

**کوښښي** (kosə́ṣi) ص. نب. نر. ښځ. م. کوششي، خواریکښ، زیارکښ.

**کوښکه**(۱) (kawṣáka) ښځ. م. لینگته، د پالوانۍ یو چال دی.

**کوښکه**(۲) (kawṣáka) ښځ. م. لرگین موړی چې په دېوال کې یې وهي او څاروي پوړې تړي.

**کوښل** (kūṣál) مص. مت. کښل، لیکل، لیک کول.

**کوښه** (káwṣa) ښځ. م. (ج. کوښې) ۱) د ښځو پنه، د ښځو پیزار؛ ۲) دوه څوښی، د بار تړلو کوږ لرگی دی چې د پړي په سر کې یې تړي.

**کوغ** (kwaǧ) نر. م. ۱) غټه چونگښه؛ ۲) ص. نر. م. کړوپ، کوپ، توغ، پر ملا کړوپ.

**کوغاتی** (koǧā́tay) نر. م. و گ. کوغالی.

**کوغالی** (koǧā́lay) نر. م ۱) دوغل، ورغالی، د سپي لرگین لوښی؛ ۲) کوډله، جونگړه؛ ۳) ښوځی، ژغوری، جرغالی؛ ٤) مج. غونډ او گردی لوښی.

**کوغلغل** (kūǧalǧál) نر. م. ج. د کنه ورغې او نورو غوښه خوړونکو مارغانو د شړولو اواز.

**کوغې سترگې** (kūǧestárge) ښځ. ج. ننوتې سترگې، لوېدلې سترگې.

**کوفت** (koft) نر.م. (ج. کوفتونه) ۱) ازار، څور، ضرر، تکلیف؛ ۲) قهر، تاو، غضب.

**کوفته** (koftá) ص. نب. ۱) ټکولی، ورژلی؛ ۲) ښځ.م. ځپنه، ټکونه؛ ۳) جن. قیمه.

**کوفي** (kofí) ص. نب. ۱) د کوفې ښار ته اړوند؛ ۲) یو لیک دی چې په ظاهره په کوفه کې پیدا شوی دی او تر پنځمې هجري پېړۍ پورې قرآنونه او دیني مطالب لیکل کېدل.

**کوک**[1] (kok) نر.م ۱) لودره، ټک، ګنډون دستنې ټک؛ ۲) یو ډول غرنی بوټی دی؛ ۳) کوکه، کریزه، کوکاره؛ ٤) چالانونه، شروع کول، کلي ورکول؛ ٥) یو ډول سکاره دي؛ ٦) کوکین؛ ۷) یوه تجارتي نښه یا ټرېډمارک دی؛ ۸) جن. کوکاکولا یو غیر الکولي څښاک دی.

**کوک**[2] (kūk) نر.م. ۱) غرنی پیاز؛ ۲) هغه پسه چې ذاتي یې غوږونه بوچي وي.

**کوکاره** (kūkára) ښځ.م. کریږه، چیغه، کریکه، کریغه.

**کوکانی** (kūkáṇay) نر.م. یو ستوری دی.

**کوکایین** (kokāyín) جن. کوکین، کوکاین، یوه ماده ده چې د کوکاو د ونې له پاڼو را ایستل کېږي.

**کوکب** (kawkáb) نر.م ۱) ستوری؛ ۲) یو ډول ګل دی؛ ۳) اوجه؛ ٤) توره؛ ٥) مېخ؛ ٦) زندان.

**کوکره**[1] (kūkrá) ښځ.م. هغه لرګي چې د اوښ د کتې په دواړو خواو کې ورکول کېږي.

**کوکره**[2] (kokrá) ښځ.م د سترګو تراخم.

**کوکری** (kūkráy) نر.م. کوتری، کوتې، کوترکی، کوچنۍ، د سپي ورو کی بچی.

**کوکرۍ** (kokaráy) ښځ.م.۱) سپېرکونډې په څېر یوه مرغۍ ده؛ ۲) د سپې بچۍ.

**کوکړ** (kūkáṛ) نر.م. ۱) لرومی، اوږد او لړونی چې د داښ او پرې لرې؛ ۲) یو ډول مشنګ دی؛ ۳) د صحرایي چرګ یو ډول دی.

**کوکړی** (kokáṛay) نر.م. و ګ. ککوړی.

**کوکړې** (kokṛé) ښځ.م ۱) د لمڅي د ځنډو کلوښتې؛ ۲) رنګه وړې چې د لمڅي ګلان ترې جوړوي.

**کوکړۍ** (kūkṛáy) ښځ.م. و.ګ. کمبلۍ.

**کوکل** (kū́kal) جن. یو ډول واښه دي چې زیاتره په سیوري کې راشنه کېږي.

**کوکله** (koklá) ص. نب. یخ وهلی، څوک چې د سړو (یخ) له امله غونج منج شوی وي.

**کوکنار** (koknár) نر.م.ج. یو بوټی دی چې افیون (تاریاک) ترې استخراجېږي.

**کوکڼه** (kūkáṇa) ښځ.م. ۱) کمپلۍ، تاروګی، بابښکی، بورا؛ ۲) کونډاله، کوکڼۍ، ګلدانۍ؛ ۳) مج. ګل.

**کوکڼۍ** (kokaṇáy) ښځ.م. کونډاله، ګلدانۍ.

**کوکو**[1] (kokó) ص. نب. ۱) واوا، ښکلی؛ ۲) ګل، کولکۍ، جنډۍ؛

**کوکو**[2] (kūkū́) صوت .نر.م. د کوکو شتکې اواز.

**کوکو**[3] (kawkáw) نر.م. زګېروی، نالښت، فریاد، د کوچني فریاد.

**کوکوبه** (kūkobá) جن. کوکوبی، عرق ګلاب.

**کوکوپښ** (kūkūpáṣ) نر.م. ملاچرګک، ملاتوتکی، بابوکی، یو ښکلی مرغه دی چې اوږده منبوکه او پر سر تاج لري.

**کوکوړی** (kokóṛay) نر.م.و.ګ. ککوړی.

**کوکوشتو** (kūkūkštu) ښځ.م. و.ګ. ګوګوشتو.

**کوکوګېډۍ** (kūkūgedáy) ښځ.م. د ګلو ګېډۍ، د ګلانو دسته، ګلدسته.

**کوفت** (koft) نر.م. (ج. کوفتونه) ۱) ازار، ځور، ضرر، تکلیف؛ ۲) قهر، تاو، غضب.

**کوفته** (koftá) ص. نب. ۱) تکولی، ورژلی؛ ۲) ښځ.م. ځپنه، تکونه؛ ۳) جن. قیمه.

**کوفي** (kofí) ص. نب. ۱) د کوفې ښار ته اړوند؛ ۲) یو لیک دی چې په ظاهره په کوفه کې پیدا شوی دی او تر پنځمې هجري پېړۍ پورې قرآنونه او دیني مطالب لیکل کېدل.

**کوک**[۱] (kok) نر.م ۱) لودره، تک، ګنډون دستنې تک؛ ۲) یو ډول غرنی بوټی دی؛ ۳) کوکه، کریزه، کوکاره؛ ٤) چالانونه، شروع کول، کلي ورکول؛ ۵) یو ډول سکاره دي؛ ٦) کوکین؛ ۷) یوه تجارتي نښه یا ټرېډمارک دی؛ ۸) جن. کوکاکولا یو غیر الکولي څښناک دی.

**کوک**[۲] (kūk) نر.م. ۱) غرنی پیاز؛ ۲) هغه پسه چې ذاتي یې غوږونه بوچې وي.

**کوکاره** (kūkā́ra) ښځ.م. کریږه، چیغه، کریکه، کریغه.

**کوکانی** (kūkā́ṇay) نر.م. یو ستوری دی.

**کوکایین** (kokāyín) جن. کوکین، کوکاین، یوه ماده ده چې د کوکاو د ونې له پاڼو را ایستل کېږي.

**کوکب** (kawkáb) نر.م ۱) ستوری؛ ۲) یو ډول گل دی؛ ۳) اوجه؛ ٤) توره؛ ۵) مېخ؛ ٦) زندان.

**کوکره**[۱] (kūkrá) ښځ.م. هغه لرګي چې د اوښ د کتې په دواړو خواو کې ورکول کېږي.

**کوکره**[۲] (kokrá) ښځ.م د سترګو تراخم.

**کوکری** (kūkrā́y) نر.م. کوتری، کوتی، کوترکی، کوچنۍ، د سپي وړوکی بچی.

**کوکرۍ** (kokaráy) ښځ.م ۱) د سپېره کونډې په څېر یوه مرغۍ ده؛ ۲) د سپي بچۍ.

**کوکړ** (kūkáṛ) نر.م. ۱) لرومی، اوږد او لړونی چې د داښ او پرې لري؛ ۲) یو ډول مشنګ دی؛ ۳) د صحرایي چرګ یو ډول دی.

**کوکړی** (kokáṛay) نر.م. و.ګ. ککوړی.

**کوکړې** (kokṛé) ښځ.م ۱) د لمځي دغنډو کلوښتې؛ ۲) رنګه وړی چې د لمځي ګلان ترې جوړوي.

**کوکړۍ** (kūkṛáy) ښځ.م. و.ګ. کمبلی.

**کوکل** (kū́kal) جن. یو ډول واښه دي چې زیاتره په سیوري کې راشنه کېږي.

**کوکله** (koklá) ص. نب. یخ وهلی، څوک چې د سړو (یخ) له امله غونج منج شوی وي.

**کوکنار** (koknā́r) نر.م.ج. یو بوټی دی چې افیون (تاریاک) ترې استخراجېږي.

**کوکنه** (kūkáṇa) ښځ.م. ۱) کمپلی، تاروګی، باښکی، بورا؛ ۲) کونډاله، کوکنۍ، ګلدانی؛ ۳) منج. ګل.

**کوکنۍ** (kokaṇáy) ښځ.م. کونډاله، ګلدانی.

**کوکو**[۱] (kokó) ص. نب. ۱) واوا، ښکلی؛ ۲) ګل، کولکی، جنډی؛

**کوکو**[۲] (kūkū́) صوت. نر.م. د کوکوشتکې اواز.

**کوکو**[۳] (kawkáw) نر.م. زګېروی، نالښت، فریاد، د کوچني فریاد.

**کوکوبه** (kūkobá) جن. کوکوبی، عرق ګلاب.

**کوکوپښ** (kūkūpā́ṣ̌) نر.م. ملاچرګک، ملاتوتکی، بابوکی، یو ښکلی مرغه دی چې اوږده مښوکه او پر سر تاج لري.

**کوکوړی** (kokóṛay) نر.م. و.ګ. ککوړی.

**کوکوشتو** (kūkūkštu) ښځ.م. و.ګ. ګوګوشتو.

**کوکوګېډۍ** (kūkūgeḍáy) ښځ.م. د ګلو ګېډۍ، د ګلانو دسته، ګلدسته.

کوکول (kokawál) مص. مت. کوک کول: ۱) کوک ورکول؛ ۲) چالانول؛ ۳) څوک ډېرو خبرو کولو ته چمتوکول (منفي صبغه).
کوکومرغه (kūkūmurǧá) نر. م. و گ. گوگوشتو.
کوکومیو (kūkūmyáw) نر. م. کونگ، گونگ، کونگی، جغد، بوم، یو مرغه دی.
کوکووله (kūkūwála) ښځ. م. کوکۍ، وله، یو ډول وله ده.
کوکه[۱] (kū́ka) ښځ. م. ناره، د زور چغه او ژړا.
کوکه[۲] (koká) ښځ. م. ۱) یو ډول تسبېح دي؛ ۲) هغه سوندوخ چې مېوه په کې وړي؛ ۳) پلکه پنکی، وړوکی مېخ؛ ٤) غرفه.
کوکی[۱] (kū́kay) نر. م. گندنه، ابنکی، یو ډول سابه دي، اومه هم خوړل کېږي.
کوکی[۲] (kawkáy) نر. م. ۱) کوولی، کویلی، یوه اوسپنیزه آله ده چې د اوړو ابنکلو لوښي پرې پاکوي؛ ۲) کوگیر، کفگیر.
کوکی[۳] (kokáy) نر. م. ککی، هلک، کوچني ته د ناز او گرانښت کلیمه ده.
کوکی[٤] (kawakáy) نر. م. ۱) چاکو؛ ۲) چاړي، ببلچه.
کوکۍ[۱] (kūkáy) ښځ. م. مج پړانگ، غنه، غنې، جولاگی.
کوکۍ[۲] (kokáy) ښځ. م. ج. ۱) دماتې شوې ښیښې ټوټه؛ ۲) کوکو، جنډۍ؛ ۳) بانېکی، کوکړۍ، کمبلۍ یوه حشره ده چې پر گل مینه ده؛ ٤) مچکه، مچه، پچۍ؛ ۵) ښځ. م. کوچنیانو ته د ناز په ډول کارېدونکې کلیمه ده؛ ٦) یوه غرنۍ ونه ده.
کوکیالی (kokyāláy) نر. م. رنگین او گل لرونکی ټوکر.

کوکیانه (kokyā́na) ښځ. م. ۱) گلزار، گلستان، د گلو بڼ؛ ۲) مج. بڼ، باغ.
کوکېدل (kokedál) مص. ل. کوک کېدل: ۱) فنر ډکېدل، لکه د ساعت؛ ۲) چالانه کېدل ۳) د یوه منفي صفت په توگه د ډېرو خبرو سر ابنېوول.
کوکۍ گوته (kokáygwáta) ښځ. م. شین غته، سکروته، مسواکه، سبابه، د شهادت گوته.
کوکۍ وله (kokáywála) ښځ. م. یو ډول وله ده.
کوگل (kogál) نر. م. گوگل.
کوگۍ (kogáy) ښځ. م. ج ۱) خوله، کوکۍ، مچه؛ ۲) کوچني ته د ناز او گرانښت کلیمه ده.
کوگیر (káwgir) نر. م. (ج. کوگیرونه) کفگیر؛ یوه اوسپنیزه آله ده چې شکل یې کاچوغې ته ورته دی خو تر کاچوغې ډېره اوږده او لویه ده.
کول[۱] (kawál) جن. ۱) زهر، جړ، گنډېر؛ ۲) مص. مت. کړل، یو عمل اجرا کول؛ ۳) ترسره کول؛ ٤) بشپړول؛ ۵) مج. جنسي مقاربت.
کول[۲] (kūl) نر. م. ۱) نسل؛ ۲) د یوه عمر، په یو منگ، همزولی؛ ۳) مج. زوزاد، آل اولاد.
کول[۳] (kwal) نر. م. څوک چې په سر ولاړ وي او پښې یې آسمان ته جگې نیولې وي.
کولاڅ (kūlā́c) نر. م. کولاچ، قولاچ، وازه، په افقي ډول سره د خلاصو نیولو شویو لاسونو اندازه.
کولبه (kolbá) ښځ. م. ۱) یبوې، یبوه، قلبه؛ ۲) دوه غوایان چې یبوې پرې کوي.
کولپ (kolp, kwalp') نر. م. (ج. کولپونه) کلپ، قلپ، چوړک، قلف، قفل، جندره.
کولپک (kūlpák) نر. م. (ج. کولپکونه) کلپک، بلوټ، لټ، کلفک، قلفک، قفلک.
کولپکی (kūlpakáy) نر. م. هغه لستوڼی چې خوله ولري، کف لرونکی لستوڼی.

**کولپول** (kūlpawə́l) مص. مت. کولپ کول، قلف یا قفل کول: ۱) بندي کول؛ ۲) خوندي کول.
**کولپي** (kūlpí) ښځ. م. ج. ۱) يو ډول گنډون دی؛ ۲) ص. نب. نر. ښځ. م. هغه څه چې قيدېږي، کولپي ستن: و گ. کنجکی(۱) ۱).
**کولپی** (kūlpáy) ښځ. م ۱) کولپی، کاشين، قولپي، کتوې غوندې خاورين لوښی دی؛ ۲) سر تړلی لوښی چې هرڅه په کې خوندي وي.
**کولپېدل** (kūlpedə́l) مص. ل. قلف (قفل) کېدل؛ ۱) تړل کېدل؛ ۲) بندي کېدل؛ ۳خوندي کېدل.
**کولپي ستن** (kūlpístan) ښځ. م و گ. کنجکی(۱) ۱).
**کولتور** (kūltur) نر. م. (ج. کولتورونه) کلتور، کلچر: ۱) دود، دستور، آداب او تاسيسات؛ ۲) ثقافت، فرهنگ؛ ۳) تمدن؛ ٤) تهذيب.
**کولتوري** (kūlturí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. د کولتور، د کلچر، د فرهنگ، دوديز، مدني، ثقافتي، تهذيبي.
**کولچه** (kūlčá) ښځ. م. (ج. کولچې) ۱) ټيکلی؛ ۲) يو ډول خواږه يا مالگين خواږه دي؛ ۳) ښځ. م. تاغمه، داغمه، تغمه.
**کولچه پخوونکی** (kūlčapaxawū́nkay) نر. م. کلچه پز، څوک چې کولچې، کيکونه پخوي.
**کولر** (kolar) نر. م. سړوونی: ۱) يوه آله يا کانتېنر دی چې شيان يخوي يا يې يخ ساتي؛ ۲) هر شی چې سړونگ کوي؛ ۳) فريج، يخچال.
**کولرا** (kolára) ښځ. م. و گ. کالرا.
**کولسترول** (kūlıstról) جن. کليسترول، مومي ما ده ده چې له غوړو سره بدن ته ننوځي او د صفرا په مرسته په وينو کې جذبېږي.
**کولک** (kolák) نر. م. ۱) وتگی، دريڅه، روزان؛ ۲) سترغلی، د سترگو کاسه.

**کولکسيون** (kūleksyū́n) نر. م. جونگ، مجموعه، اجتماع؛ سره راغونډ شوي شيان، لکه د پوستي ټکسو.
**کولگی** (kūlgáy) ښځ. م. يو ډول خوندور بوټی دی چې وړې داني اونرۍ ډنډر لري.
**کولمه** (kūlmá) ښځ. م. (ج. کولمې) د انسان او حيوان په نس کې اوږده پيپونه دي چې خواړه له معدې څخه هغو ته داخلېږي.
**کولن** (kūlán) نر. م. ۱) تن، و گ سپړنی؛ ۳) بيا. قولون، د بدن کولمه ده، د پنډو کولمو يو برخه.
**کولنډ** (kolánd) نر. م. کلنډ، کولنډی، هغه لرگی چې د ښاروي يا سپي په غاړه کې يې اچوي.
**کولنگي** (kulangí) ص. نب. کلنگي، قلنگي؛ اصيل (چرگ)، جنگي چرگ.
**کولنی** (kolánay) نر. م. يو ډول بوټی دی چې له ښخه يې نباتي شيدې راباسي.
**کولوار** (kūlwā́r) نر. م. د ملنگانو هغه ځولۍ يا بکسه چې د گدايۍ اوخيرات سامان پکې ساتي.
**کولول** (kūlawə́l) مص. مت. ۱) رغړول، تولول؛ ۲) تړول، تراشل؛ ۳) ځمکه ايشول (لکه د سرکې په وسيله).
**کولولو** (kūlūlū́) نر. م. د مټ شيطان، شيطان خوټ، د شگو شيطان؛ يوه خړه کوچنۍ حشره ده چې په ميده شگو کې اوسي.
**کولولی** (kūlawə́lay) نر. م. ۱) رغړولی، تيلولی؛ ۲) تړول شوی؛ ۳) ځمکه ايشولی.
**کولون** (kūlúm) نر. م. و گ. کولن.
**کولوننه** (klontá) ښځ. م. د لومې (دام) اضافه برخه، د لومې د تناو سر.
**کوله**(۱) (kawlá) ښځ. م. (ج. کولې) نلۍ، توقه، قولته، د کارتوس تولی.

**کوله**⁽²⁾ (kawála) ښځ.م. پخل، پخنه، سرأی، د درمند د دلی ګېدی پرانستنه او د غوایانو پښو ته د میده کولو لپاره د هغې اچونه.

**کوله**⁽³⁾ (kūlá) ښځ.م. (ج. کولې) ډولی، غرانګه، د سپي يو ځانګړی اوږد اواز؛ ۳) د ډبرو سکرو يو ډول.

**کوله**⁽⁴⁾ (kūwalá) ښځ.م. د ختو نغري چې د فلزي انګيتۍ په څېر جوړ شوی وي.

**کولا** (kolá) ښځ.م. د ډبرو سکاره، ذغال سنګ.

**کوله بوله** (kólabóla) ښځ.م. د خواخوږۍ او غمخورۍ يوه کليمه ده.

**کولی** (kwaláy) ښځ.م.ډ غره نری لاره چې پېچومي او پاتکي ولري.

**کولی**⁽¹⁾ (koláy) نر.م. کودلی، کوکی، اوسپنيزه آله چې د اوړو اغږلو لوښی پرې پاکوي.

**کولی**⁽²⁾ (kūláy) نر.م. کندو، خمبه، د ختو کندو چې غله په کې اچوي.

**کولی**⁽³⁾ (kūláy) ق. ټول، تمام، ګرد.

**کولي** (kawlí) نر. ښځ.م. ۱) د بدلزنو هنديانو د بقاياو يوه طايفه ده؛ ۲) پنډی، جوالي.

**کوليار** (kolyā́ṛ) نر.م. يو ډول غرنی ونه ده، پلي يې پخوي.

**کولېدل** (kūledə́l) مص.ل ۱) رغړېدل؛ ۲) توږل کېدل؛ ۳) ايشېدل (لکه څمکه په سرکې سره).

**کولير** (kolír) نر.م ۱) زنار، طوق؛ ۲) بند، کولنډ.

**کوليغه** (kūliğá) جن. د سوځېدو مواد چې په عربي يې (وقور) بولي.

**کوم**⁽¹⁾ (kūm) ض. (ګر.) کم، کوم، يو استفهامي ضمير دی چې د يوه شي يا سړي د ذات د تعيين د پوښتلو پر وخت استعمالېږي.

**کوم**⁽²⁾ (kawə́m) ف. (ګر.) د استمراري حال لپاره د متکلم مفرد صيغه ده چې د «کول» له مصدره جوړېږي.

**کوما** (komā́) ښځ.م. بېهوښي، بېحالي، په ځان د نه پوهېدو يو عميق حالت دی.

**کوماچ** (kūmā́č) جن. ۱) هغه غنم چې نوي يې داني نيولې وي؛ ۲) ګوړماچ، يو ډول خواږه دي؛ ۳) نر.م. د پتيرې ډوډۍ لوی کنډک يا کتره؛ ۴) څڅېدلې ډوډۍ.

**کوماله** (kūmā́la) ښځ.م. يو ډول غرنۍ خوندور بوټۍ دی.

**کومبار** (kūmbā́ṛ) نر.م. کولال، کلال، کمپار، د خاورينو لوښو جوړوونکی.

**کومبړ** (kumbə́ṛ) نر.م. کومړ، ۱) د کاليو لوی سوری؛ ۲) تپ، زخم، لوی زخم.

**کومره**⁽¹⁾ (kūmrá) ښځ.م. د پښې د کار د وسايلو صندوق.

**کومره**⁽²⁾ (kūmará) نر.م. د اوښانو د خوراک يو ډول ګيا ده چې ګردې پاڼې لري.

**کومړ** (kūmə́ṛ) نر.م. و.ګ. کومبړ.

**کومړی** (kūmṛáy) ښځ.م.ج. د يو ډول بوټي اغزن غونډاری دی.

**کومک** (komák) نر.م. کمک، مرسته، لاس کول، امداد کول.

**کومکی** (kūmakáy) ښځ.م. يو ډول کوکو کوتره ده.

**کومکي** (komakí) ص. نب. نر. ښځ.م. (ج. کومکيان) ۱) مرستيال، مرسته کوونکی؛ ۲) په کومک اړوند.

**کومل** (komál) نر.م. (مو.) دروند سُر، بم سُر د تيبر په مقابل کې دروند يا بم سُر، ښکته سُر.

**کومڼ** (kumə́ṇ) ص. نر.م. ۱) مړاوی، شيته او خوسا؛ ۲) ارام، غلی.

**کومنتوب** (kūmantób) نر.م. ۱) کومنتیا، کومنوالي، شیته والي؛ ۲) آراموالي، غلیتوب.

**کومنول** (kūmanawə́l) مص.مت. ۱) شیته کول، مراوې کول؛ ۲) غلی کول، ارامول.

**کومنېدل** (kūmanedə́l) مص.ل. ۱) شیته کېدل، مراوې کېدل؛ ۲) کرارېدل، غلی کېدل.

**کومول** (kūmól) نر.م. ډینگ، کمول، چغنی، لگ لگ، د اوبو یو مرغه دی چې اوږدې پښې او جگه غاړه لري او غوښه یې خوړله کېږي.

**کومه** (kúma) ښځ.م. بوک، بوکان، کېو، گوپ، کوهان، د اوښ په ملا کې راوتلې ځای.

**کومی** (kūmáy) نر.م. ۱) وگ. کومه؛ ۲) له غاښو څخه تر ستوني پورې برخه؛ ۲) داور ژغورگی، نغری؛ ۳) د هر شي مرکز یا عمق.

**کومیډي** (kūmiḍí) ښځ.م. کمیډي؛ ۱) هره ادبي ننداره یا کمپوزیشن چې پر ویر او ماتم پای ته ورسېږي؛ ۲) خندوونکې یاخوشالوونکې پېښه.

**کومیک** (k(o,ū)mík) نر.م.ج. وگ. کمیک.

**کون** (kawn) نر.م. ۱) هستي، د وجود عالم؛ ۲) نړۍ، جهان؛ ۳) موجودوالی، هستوالی.

**کونات** (kūnát) نر.م ۱) د کوزې ببخ؛ ۲) کونک، د هگۍ ببخ.

**کوناټور** (kawnāṭawə́r) ص.نر.م. ۱) سومباټور، د غټو کوناټیو خاوند؛ ۲) مج. بې غیرته.

**کوناټی** (kūnāṭáy) نر.م. (ج. کوناټي) د انسان د ورنونو او ملا تر منځ پسته او راوتلې برخه.

**کوناری** (kūnāráy) نر.م. (ج. کوناري) قصاب.

**کوناستی** (kūnāstáy) ښځ.م. د کوچنیانو یو ډول بازو لرونکې څوکۍ ده.

**کوناستی** (kūnāstáy) نر.م. ۱) د کوچني لومړۍ کښېناستنه؛ ۲) د ناروغ لومړنۍ کښېناستنه.

**کوناغ** (konā́ğ) نر.م. کتغ، ننگولی، نگولی.

**کونتاله** (kūnatālá) ښځ.م. شنه لښته چې سر یې مات شوی وي.

**کونتی** (kūntáy) ص.نر.م. ۱) کونتې، راکوږ؛ ۲) هغه دېوال چې ډډ شوی وي.

**کونټی** (konṭáy) ښځ.م. ۱) کږه سری لرگی؛ ۲) کږه سرې امسا (لکړه).

**کونج** (k(wa,o)nj) نر.م. کنج، گوټ.

**کونجاړه** (kūnjāṛá) جن. کنجاړه، خنجاړ، کل، هغه مواد چې له پنبه دانې او شرشمو څخه پاتې او تېل ځنې ببل شي.

**کونجت** (kunjə́t) جن وگ. کونځله.

**کونجری** (kūnjaráy) نر.م. کنبیده، نقش و نگار، په دېوال کې نقاشي شوی.

**کونجړ** (kūnjáṛ) نر.م. سابه خرخوونکی، د شنو خرخوونکی.

**کونجک** (kūnjə́k) نر.م. ۱) کنجک، کنجکی، د کونج مصغر؛ ۲) گوټ، کونج.

**کونجکه** (kwánjəká) ښځ.م. کنجکه، یو ډول مرۍ ده چې د کوچنیانو په غاړه اچول کېږي.

**کونجلغ** (kūnjlə́ğ) ص. نر.م. ۱) منجیله، گونجه شوی، گونځه شوی؛ ۲) تونډ موند، کونجغکه، سوټ بوټ.

**کونجي** (kunjí) ښځ.م. کنجي، چابي، کیلي.

**کونجی** (kūnjáy) ښځ.م. ۱) یو ډول ډبره ده چې د ژرندې پل ځنې جوړوي؛ ۲) د اوبه چښلو خاورین لوښی؛ ۳) ص.نر.م. کړوپ؛ ٤) ډېر بوډا، ډېر زوړ.

**کونجۍ** (kūnjə́y) ښځ.م. څرخی، گونجۍ، د سپنسو کلاوه، د تارونو کلوله.

**کونجیتې** (konjə́te) جن. وگ. کونځله

کونځله (konǰāla) ښځ.م.ج (ج. کونځلې) کونجدې، کونجتې، کونجنت، کنجد، يوه گياه ده چې دانې يې ٦٠٪ غوړي لري.

کونځی (kowncāy) ښځ.م. و گ. کوځی.

کونداځه (kūndāza) ښځ.م. پياله، کنداځه، د چايو او اوبو څښلو لوښی.

کونداغ (kwándāg̃) نر.م. کنداغ، قنداغ، د توپک يا ماشيندار لرگينه برخه چې له سينې سره لگوله کېږي.

کوندروزی (kūndrūzay) نر.م. ۱) مرچک، سره مرچک؛ ۲) جوع البقر؛ يو ډول ناروغي ده چې لوږه په کې ډېره وي.

کوندروکی (kūndrūkay) نر.م. وړوکی دسترخان، کوچنی دسترخان.

کوندری (kūndrāy) نر.م. ۱) دسترخوان؛ ۲) د پرستنې مخ؛ ۳) ښکلې بوجگۍ چې خښتې د ناوې کورته خونی په کې وړي؛ ٤) ژورغالی.

کوندرېزی (kūndrézay) نر.م. درېندی، د پسونو يوه ناروغي ده.

کوندس (kūndās) نر.م. گل کند، گل قند.

کونډوړی (kūndūṛāy) نر.م. کنده، ژوره، ډوغل، غوچوړی.

کونده (kūndā) ښځ.م. (ج. کوندې) ۱) کنده، غټ لرگی دی چې د يبوې غشی، موټانې او سپار يا پال پکې کلکېږي؛ ۲) درد او تکليف له منځه تلنه؛ ۳) د رسيدونو، بيلونو، ټکسونو او... د پانو پاتې شوې برخه.

کوندی (kūnday) نر.م. ۱) د مجنوغزې پړی؛ ۲) له ډېره درده پرله رغښتل؛ ۲) هغه پړی چې د غوندې خوله پرې تړي.

کوندي (kūndi) ښځ.م. په وړې يا سرېښو سره، زرينې او سوچه خولۍ پاکونه.

کونډ[1] (kwánḍ) نر.م. روزمانه، د مېږو او وزو د لنگېدو وخت.

کونډ[2] (kwánḍ) ص.نر.م. ۱) هغه سړی چې ښځه يې مړه وي؛ ۲) دغره ثوکه؛ ۳) حيض.

کونډا (kūnḍā) ښځ.م. تغاره، تغار، لويه خاورينه تغاره.

کونډاله (kūnḍālā) ښځ.م. ۱) کوکنی، گلدانی؛ ۲) د بنگو سولولو لوښی؛ ۲) ماته لښته.

کونډتوب (kwánḍtob) نر.م. کونډوالي، کونډتيا، هغه حالت چې د سړي ښځه مړه او د ښځې مېړه مړ وي.

کونډتون (kūnḍtūn) نر.م. کونتون، هغه ښځه چې د مېړه ترمرگ وروسته بل مېړه نه کوي.

کونډغالی (kwánḍg̃ālay) نر.م. ۱) کوټخه، کوډله؛ ۲) د غريبۍ وړه کوټه؛ ۳) په غره کې د پسونو او مېږو موقتي ځای چې تش وي.

کونډکي (kūnḍáki) ښځ.ج ۱) کونډياري، د ونو لاندې خځلې؛ ۲) لنډ ويښته، لنډ ويښتان.

کونډکی (kūnḍakáy) ص. ښځ. م. غونډکی، ټنډکی، وړه او غونډه منډه ښځه.

کونډلژغ (kūnḍalžág̃) نر.م. زغلنډی، ژغنډی، دجغ دوه لرگي چې د غويي غاړه په کې وي.

کونډلی (kūnḍalāy) ښځ.م. کرهڼ، کونډی، مرکونډی، يو ډول اغزن بوټی دی.

کونډوکی (kunḍūkay) نر.م. و گ. کونډکی.

کونډول (kūnḍawāl) مص.مت. ۱) لومړی ځل په بغرۍ کې د شولو ټکول؛ ۲) د سړي ښځه وژل يا د ښځې مېړه وژل.

کونډوه (kunḍáwa) ښځ.م. دسترخوان، دسترخان.

**کونډه**(۱) (kūnḍa) ص. ښځ. م (ج. کونډې) هغه ښځه چې مېړه يې مړ وي.

**کونډه**(۲) (kondā̆) ښځ. م. ۱) روبۍ ته چې وره کړی، وراچوله کېږي؛ ۲) دزنځير کړۍ يا حلقه؛ ۳) دځيگر مرغېږي ٤) کنده، سرچينه؛ ٥) د کب نيولو چنگک.

**کونډی** (kwánḍay) ص. نر. م ۱) لنډ؛ ۲) کلی، کنډا، بې ښکرو؛ ۳) پاتې، مغلوب؛ ٤) مونډه، بونډۍ هغه ونه چې يوازې ستنه يې پاتې وي.

**کونډۍ**(۱) (konḍā̆y) ښځ. م. ۱) د لرگي وړوکې کاسه؛ ۲) د کوناتي د پاسه هډوکی.

**کونډۍ**(۲) (kūnḍā̆y) ښځ. م. ۱) و گ. کونډلۍ؛ ۲) د لاس يو پسول دی.

**کونډۍ کول** (kūnḍaykawā̆l) مص. مت ۱) کوندی کول، پېچل، تاوول؛ ۲) کرشپ کول.

**کونډياري** (kūnḍyārí) ښځ. م.. و گ. کونډکی.

**کونډېدل** (kundedal) مص. ل. ۱) بې مېړه کېدل؛ ۲) ښځه يې مړه کېدل.

**کونړۍ** (kūnərā̆y) ښځ. م. ۱) کتوه، کتو، کتوی، دمستو کتوه؛ ۲) په تأنيثي صفت سره کونړ ته منسوبه.

**کونستر** (konastár) نر. م. و گ. کنستر.

**کونسترکی** (konastárkay) نر. م. هغه تو کر چې د کوچنيو له کوناتيو او پښو ځخه راچاپېرېږي.

**کونسټ**(۱) (k(wa,o)nsáṭ) نر. م. ۱) په ايره خول کې پخه شوې ډوډۍ؛ ۲) بېخ، وېخ؛ ۳) کونسټه د ونې ستنه يا بېخ.

**کونسټ**(۲) (kwansáṭ) ص. نر. م. شل، گوډ، شا، وشوټ، شيل.

**کونسټه** (kwansáṭa) ښځ. م. کونسټ؛ ۱) ستنه، بېخ؛ ۲) مج. د زيات قدرت خاوند.

**کونسل** (konsíl) نر. م. قونسل، قنسل، قونصل؛ هغه استازی چې د يوه پردي هېواد په يوه ښارکې د خپل هېواد او د هغه د ښاريانود حقوقي او اقتصادي گټو ممثل او ساتندوی وي.

**کونسلگري** (konsalgarí) ښځ. م. کونسل خونه، قنسلگري، د کونسل رسمي دفتر.

**کونسوی** (konasáway) ص. نر. م. و گ. کونه سوی، بېخ سوځېدلی، وېخ سوی.

**کونسۍ** (kawnsā̆y) ښځ. م. کوڅی، کونځی.

**کونسيه** (kawnsiyá) ښځ. م (مو.) کانسيه، کجری، ځانته يا بېل راگ نه دی، هاغه يمن کليان دی چې په مدهم يې وايي.

**کونغو** (kūngú) نر. م. د سوجې هډوکی، د کونه ډوب هډوکی.

**کونک** (kūnák) ق. ۱) اخير، پای؛ ۲) وروستـه؛ ۳) نر. م. د انگورو دوبچه يا جـويه؛ ۲) دهگۍ پچک (پچ).

**کونکورۍ** (kūnkūráy) ښځ. م. کونۍ، د خاورو وړه کټوۍ چې په پنجره کې مارغانو ته په کې اوبه يا دانې اچوي.

**کونگ**(۱) (kwáng) نر. م. گواټی، کونگو، کونگی، يوه مرغۍ ده چې په رڼا کې څه نهويني.

**کونگ**(۲) (kawáng) نر. م. و گ. کونه(۱).

**کونگارې** (kūngáre) ښځ. ج. کـولې، قـولې، غرانگې، د سپي اوردې نارې.

**کونگچ** (kūngáč) نر. م. ازانگه، انگازه، پژواک.

**کونگره**(۱) (kongrá) ښځ. م. کوکره، کوکرې، د سترگو د تراخم ناروغي.

**کونگره**(۲) (kūngərá) ښځ. م. و گ. کنگره(٤).

**کونگری** (kūngráy) نر. م. کونگرکی، کوکری، کوتری، کوترکی.

**کونګړ** (kūngáṛ) نر.م ۱) بنسټ، بېخ؛ ۲) پ. ک. د پښتنو یو دود دی: د چا چې اولاد نه پاتېږي، نو د خپل زوی یا لور غوږ سوری کوي او هغه ته مندری یا کړی وراچوي اوخیرات کوي.

**کونګوتي** (kūngūtí) ښځ.م. ۱) ګوته ورکول، شاغوتول؛ ۲) پېغورونه؛ ۳) پیشاړه، تمسخر.

**کونګه** (kūngá) ص. نب. بېتابه، ناکراره، په کړاو اخته.

**کونګی** (kūngáy) نر.م.و ګ. کونګ(۱).

**کونه**(۱) (kawána) ښځ.م. کړنه، کونګ، عمل.

**کونه**(۲) (kwə́na) ښځ.م ۱)سوغی، سومبی، غره، مقعد؛ ۲) بېخ، وېخ، قاعده.

**کونه سوی** (kwanasáway) نر.م. کونسوی؛ هغه نګولی چې سوی وي یا د سوي خوند ولري.

**کونه غری** (kwanağáray) نر.م. د کوناټي هډوکی، د کونډي هډوکی.

**کونه ګوته** (konagóta) ښځ.م. اني بهانې، پلمه کول، ځان تېرونه.

**کونی**(۱) (kū́nay) نر.م ۱) د وزو او مېږو په پوستکي کې یوه حشره ده؛ ۲) مج. زیارکښه، پر کاره.

**کونی**(۲) (kwánay) جن. کوینی، لېښوین، کوولی.

**کوني** (kūní) نر.م. سوپری، غانډو، پُشت، ډوره، مفعول.

**کونی**(۱) (konáy) ښځ.م ۱) صماخ، د غوږ د سوري ورستی برخه؛ ۲) د انډوخر په لوبه د لوبغاړي د. درېدو دایره.

**کونی**(۲) (kwánay) ښځ.م.ج. ۱) کاسیره، فاحشه؛ بداخلاقه ښځه ۲) هغه ښځه چې خپل مقعد د مقاربت لپاره وړاندې کوي.

**کونیځی** (kwanícay) نر.م. نغاړی، منجیله، هغه لوخې یا ټوټه چې ښځې یې د سر د پاسه د منګي لاندې ږدي.

**کونیز** (kūníz) نر.م. دومباله پور، دمبالپور، یو ډول پخوانی ټوپک دی.

**کوني کاټر** (kūnikāṭár) نر.م. چونګاښ، چنګاښ، کونیکبر، کنجپوړ، کنجپېوړ.

**کونیکبر** (kūnikábar) نر.م.ج. چونګاښ، کنجپوړ، سرطان، پنجه پاو، خرچنګ.

**کونین** (kawnáyn) نر.ج. د کون تثنیه، دوه جهانه، دنیا او آخرت.

**کوڼ**(۱) (kūṇ) ص.نر.م. (ج. کاڼه) په غوږو درونډ، چا چې د سامعې حس له لاسه ورکړی وي.

**کوڼ**(۲) (koṇ) نر.م. یو ډول بوټی دی.

**کوڼتوب** (kūṇtób) نر.م. کڼوالی، کڼتوب، کوڼتیا، کوڼوالی؛ په غوږو درونډوالی یا کڼوالی.

**کوڼکی** (kūṇkáy) ښځ.م. کڼکی، کړکی، ورسی.

**کوڼول** (kūṇawā́l) مص. مت. ۱) کڼول، کوڼ کول، په غوږو درنول؛ ۲) مج. په جګو آوازو او ځوږ سره د چا غوږونه ځورول.

**کوڼی**(۱) (kūṇáy) ښځ.م. ۱) د تکي سر، د زنګانه سترګه؛ ۲) ککری، کوپړی؛ ۳) کونکوری، په قفس کې د مرغیو د اوبو لوښی؛ ٤) لو. د خانې خانې لوبه، د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**کوڼی**(۲) (koṇáy) ښځ.م. کوټڅه، جونګړه، کوډخه، د غریبې کور یا کوټه.

**کوڼی**(۳) (kawaṇáy) ښځ.م. د مټک یوه خوا، د غوز یوه پله، د یوه غوز نیمه پله.

**کوڼی** (kū́ṇay) نر.م ۱) وینه، واینه، لرګی خوړونکی چینجی؛ ۲) ګوڼی.

**کوڼېډل** (kūṇedál) ز ګ. کڼېدل.

**کوڼیک** (kūṇík) نر.م. منګوره، خیځیک، کټمل.

**کوواوې** (kūwāwé) ص. ښځ.م. کلکه یا سخته یا کنه (ځمکه).

**کووکی** (kawūkay) نر.م. کوېلی، کوګیر، کفګیر.

**کوولی** (kowālay) نر.م. کولی؛ ۱) فلزي آله ده چې د اورو د اخیښلو (اغېړل) لوښي پرې پاکوي؛ ۲) کولی، هغه دېګ چې ښخ ونیسي.

**کوونکی** (kawūnkay) فا. نر.م. کړونکی، څوک چې د یوه کار یا فعل کړونکی وي.

**کووېدی** (kuwéday) نر.م. ۱) حدود؛ ۲) نښه؛ ۳) څروی، شیشی، لولو، ډوری.

**کوه** (kōh) نر.م. دوه خوښې، دوه ښاخې لرګی چې په سرکې یې د ښېری د راښکلو پری وي.

**کوهان** (kohān) نر.م. و.ګ. کومه.

**کوهړ** (kūhāṛ) نر.م. سخته او کلکه متروکه.

**کوه نور** (kohinūr) نر.م. مشهور، تاریخي او د زیاتې بیې لرونکی الماس دی.

**کوهی** (kohāy) نر.م (ج. کوهي) کویی، ښاه.

**کوهیل** (kohīl) نر.م. کوهیله، کویل؛ ۱) توره ترکه، ډانګ لکۍ؛ ۲) د یو ډول مرغه نوم دی.

**کوی**(۱) (kāway) نر.م. ۱) ننکی، چیچک، یوه بده پورې کېدونکې ناروغي ده؛ ۲) ف. کوای، کولای، کولی.

**کوی**(۲) (kuay) نر.م. تخمور، تخور، کاه، کهه، خارښت، تخمار.

**کوی**(۳) (koy) جن. کوینی، کویلی، د دېګ پاتې شوې برخه.

**کویان** (koyān) نر.م. هغه حالت چې غوا لنګوان ته نږدې شي؛ غولانځه یې غټه شي او ...

**کوېدل** (kawedāl) مص. ل. ۱) زګېروی کول، فریاد کول؛ ۲) د سپي غپېدل.

**کوېدن** (kwedān) نر.م. کوزده، کوژده، څونی اچونه.

**کوېدی** (kwedāy) نر.م. کهار، هغه سړی چې ناوې د میږه کره بیایي.

**کویزه** (kwīza) ښځ.م. ۱) کوازه، هغه درول شوی لرګی چې ختګر پرې درېږي؛ ۲) غټ لرګی چې پر اورو له پاسه د درانو شیانو د انتقال لپاره اېښودل کېږي.

**کوېږه** (kawéẓa) ښځ.م. یوه سپینه غرنۍ ونه ده چې پاڼې یې د ښونه د ونې په څېر دي.

**کوېښ** (kwiṣ) نر.م. ۱) لیک، خط؛ ۲) لیکنه، تحریر.

**کوېښل** (kwiṣəl) مص. مت. کښل، لیکل، ښکل، تحریر کول.

**کویل** (koyāl) مص. مت. ۱) پاکول؛ ۲) نر.م. ګوټ، ګوټک؛ ۳) کوهیل، کویله، یو مرغه دی چې اوږده لکۍ لري؛ ٤) مص.مت. کینل، کنل، تورل، (کویی) هم ددې ریښې څخه دی.

**کوېلی** (kwélay) نر.م. ۱) کوینی، کوولی، کونی، کنستر، کونسوی؛ ۲) کفګیر، کوګیر.

**کویلې** (koyāle) ښځ.م. ژړا، فریاد.

**کوین**(۱) (kawyīn) نر.م. ۱) کولنګ، کینتری؛ ۲) میتی، تسکوره.

**کوین**(۲) (kūyīn) نر.م. په ځینو پښتنې سیمو کې نکاح ته وایي.

**کوینی** (kwēnay) نر.م. و.ګ. کویلی۱.

**کویه** (kūyā) ښځ.م. پویه، بزه، پیه، اوسزی، یوه حشره ده چې وربن کالی خوري.

**کویی** (kwyāy) نر.م. (ج. کویان) و.ګ. کوهی.

**کوېلی** (koyēlay) نر.م. کوکی، کوګیر، کفګیر، کووکی، کویلی.

که (ka) ف. ۱) کړ، کاوه، د مفرد او جمع غايب لپاره د استمراري ماضي صيغه ده؛ ۲) کړه، کوه؛ مفرد مخاطب ته د کولو امر دی.

کهار (kahăr) نر. م ۱) سورتور بخن آس چې زنګونه يې تور وي؛ ۲) کورنۍ ميتاپايي؛ ۳) کويدی؛ هغه شوک چې له ناوې سره د پلار له کوره د زوم کور ته ځي؛ ٤) هغه سړی چې دناوې سامان راتولوي او دزوم کره يې وړي؛ ٥) ص. نر. م. ج. سکاڼ، غنم رنګی.

کهاره (kahārá) ښځ. م. وګ. کواره.

کهاړه (kahāṛa) ښځ. م. ۱) نغوری، کونيځی، منجيله؛ ۲) موخه، هدف، نښه، نښکه، تکی.

کهال (kahāl) ص. نر. م. ج. کهاله؛ ۱) لټ، تمبل؛ ۲) کمزوری، ضعيف.

کهالول (kahālawə́l) مص. مت. ۱) لټول، لټ کول، سستول؛ ۲) کمزوری کول، ضعيفول.

کهالي (kahālī) ښځ. م. ۱) لټي، سستي، تمبلي؛ کهالي کښل، غځوونې کول، ستړيا کښل؛ ۲) کمزوري.

کهالېدل (kahāledə́l) مص. ل. ۱) لټېدل، لټ کېدل، سستېدل؛ ۲) ضعيفېدل.

کهربا (kahrūbā́) ښځ. م. اکربه، خس او خاشه رانښکونکې تيږه.

کهړکی (kahıṛkáy) ښځ. م. د سترګو کولک، د سترګې شا و خوا ژور ځای.

کهښت (kahā́şt) نر. م. خارښت، کاه، کاهښت.

کهکشان (kā́hkašā́n) نر. م. اسمان لاره، دلدل لاره، مجره، په آسمان کې وړېځې غوندې کرښه ده چې له مليونو ستورو څخه جوړ شوې ده.

کهنګه (kahánga) ص. ښځ. م. ترنګه، ګنګه، دنګه، جګه، د پهغلې يو صفت دی.

کهنه (kahána) ښځ. م. ظريفيت، ګنجايش.

کهول[1] (kahól) نر. م. ۱) کور؛ ۲) کورنی، ټبر، خاندان، د کورنۍ د غړيو مجموعه ده.

کهول[2] (kahawə́l) مص. مت. قی وهلو ته اړ کول، خوا ورګرځول.

کهه (kahá) ښځ. م. ۱) قی، کانګې؛ ۲) خارښت.

کهی (kahə́y) ښځ. م. ج. ۱) کښې، کيې، کيی، د تېښتې په ځېر يوه آله ده؛ ۲) د ژرندې د پل تير.

کهی (kaháy) نر. م. ۱) کجاوه، د لښتو او ونو پټم چې اونه پرې بندېږي؛ ۲) يو ډول ځېږ نبات دی؛ ۳) ص. نر. م. ډنګر، لغړ؛ ٤) نر. م. خندق؛ ٥) سکره، د مزري بوټی.

کهېدل (kahedə́l) مص. ل. ۱) ډنګرېدل، خوارېدل؛ ۲) خواګرځېدل، په استفراق کښېوتل.

کهين (kahín) ص. نر. م. ج ۱) د کرکې وړ، منفور؛ ۲) پند، ډبل.

کې (ke) اد. کښې.

کيائه (kayā́ja) ص. نب. مراوی، زموّل، شيته، جينګ، شوته.

کياری (kyā́ráy) ښځ. م. پتی، ځمکه.

کيازه (kayā́za) ښځ. م. ۱) وښ، ګيازه، د ځارويو د خولې لاړې، ناړې؛ ۲) مج. د انسان د خولې لاړې.

کې ايستل (keıstə́l) مص. مت. ۱) کښاسل، کښېيستل، اخته کول؛ ۲) کار پيل کول.

کېبر (kebár) نر. م. ښاخې، سکو، دوه ښاخه، د بوسو بادولو آله.

کېبل (kebə́l) نر. م. (ج. کېبلونه) ۱) پلن او پنډ سيم؛ ۲) پلن او پنډ واښ؛ ۳) د کښتۍ پړی.

کېت (ket) نر. م. دين، کېش، ايين.

**کیته** (kita) ص. ښځ.م. وازه، خلاصه، ویته، د خولې یو صفت دی.

**کېټ** (keț) نر.م. شهرازه؛ ۱) هغه دېوال چې د کلا د ورځ له مخې څخه راتاوېږي؛ ۲) تر کلا چاپېره دېوالونه.

**کېټلی** (keṭalay) ښځ.م. مرغانچه، د چرگو او چرگانو کوټنۍ.

**کېج** (kej) ص. نر.م. ۱) کېږ، قېج، کلک، هغه سابه چې کلک شي او له خوراکه وځي؛ ۲) نر.م. هغه پړی چې کلک غښتل شوی وي.

**کېجلی** (kejəlay) نر.م ۱) اسي، بخیل، ممسک، شوم؛ ۲) بد چلنده.

**کېجم** (kejəm) نر.م. شاگوری، نمله، هغه لمڅی چې د آس د زین لاندې اچول کېږي.

**کېچ** (keč) نر.م. د خامتا (بیستی) په څېر یو ډول اوبدل شوی څادر.

**کېچټ** (kečaț) ص. نر.م. د لږ عمر، کم عمره، کم سنه، د لږ عمر خاوند.

**کیچړی** (kičṛay) جن. و گ. کچړی.

**کیچېړي** (kičaṛi) جن. چکړ، چکړې، چقړې، ختې.

**کیچی** (kicay) ص. نر.م. وړوکی، کمکی، کوچنی.

**کېڅ** (kec) نر.م. ډورۍ، قبر، گور، مړیستون.

**کېڅکنی** (keckənay) نر.م. ص. قبر ایستونکی، گور کنونکی، قبرکن.

**کېڅی** (kecay) ښځ.م. ۱) ډوبگی، کسبت، د نایانو د سامان کڅوړه؛ ۲) کڅوړه، کیسه.

**کیخکه** (kixaka) ښځ.م. کوشتوری، هغه هندوانه چې تر نورو وروسته پخه شي.

**کیخه** (kixa) ښځ.م. خرماشی، خرمیاسی، خرړنگې غوماشه.

**کیخی** (kixay) نر.م. کخی، کوخک، کوخی، واړه سپین چینجي چې په مقعد کې پیدا کېږي.

**کېداره** (kedārá) ښځ.م. (مو.) کېدارا، کېدار، د دیپک راگ یوه اوډوراگني ده.

**کېدای** (kedāy) ف. کېدلای، کېدی، کېدلی، د فعل د امکاني حالت څرگندوونکې کلیمه ده.

**کېدل** (kedəl) مص.ل. ۱) شول، واقع کېدل؛ ۲) موجودېدل، موندل کېدل؛ ۳) زېږېدل.

**کېدونی** (kedunay) نر.م. شوونی، د کېدلو وړ چاره یا شی.

**کېده** (kedə) نر.ج. ۱) شول، شوه؛ ۲) نر.م. زېږېده؛ ۳) ف. کېدنگ، ترسره کېده.

**کېدئ** (keday) ف. کېده، (اجزاء، وقوع).

**کیر** (kir) جن. کهیر، نرۍ شیدو وریجې.

**کیرانه** (kirāṇa) ښځ.م. پرچون شیان، پرچون مال.

**کېرته** (kertá) ښځ.م. د گندنې په څېر یوه گیاه ده چې پاڼې یې کلکې او تېرې دي.

**کیرړی** (kirṛay) نر.م. چینچار، کریړی، کرړی؛ یوه حشره ده چې جامه وهي.

**کېرغه** (kerğa) ښځ.م. یو بوټی دی چې سپین گل کوي او ببخ یې نری وي.

**کیرکیرک** (kirkirak) نر.م. کب خورکه، یوه مرغۍ ده چې خوراک یې کب دی.

**کېرندی** (keranday) ښځ.م. تیپچه، کرکری، یوه آله ده چې د مرز په څېر اوازونه ترې وباسي.

**کېره** (kera) ښځ.م. یوه ونه ده چې سرې سرې دانې کوي او پاڼې نه لري.

**کېری** (keray) نر.م. څوک چې دسیند له شگو زر بېلوي.

**کېرۍ** (keráy) ښځ.م. ۱) د څرخ او ارابې غاړه؛ ۲) هغه غلبېل یا ناوه چې شګه او زر سره بېلوي د شګو د زرو چاڼوونکی غلبېل.

**کیري توب** (kiritób) نر.م. له شګو څخه د زرو ایستلو (استخراج) کسب.

**کېړ** (ker̤) نر.م. (ج. کېړونه) ۱) شپول، پنډ غالی؛ ۲) وېره، اړه؛ ۳) منداوو، غابنور؛ ٤) فرشي دروازه او کړکۍ؛ ۵) کتار، چیل، لین.

**کیړکیچو** (kir̤kičo) ښځ.م. ۱) تېرتېرۍ، تتله؛ ۲) سست، لړزانده، بې ثباته.

**کېړه** (ker̤á) ښځ.م. ۱) کړېکۍ، کوتره ډوله کندو چې له کړکو او لښتو څخه جوړ شوی وي؛ ۲) پېکل، چجکۍ؛ ۳) پولکۍ، دوه ښاخی مېخ چې پال پرې په کونده کې ټینګوي.

**کېړه ګۍ** (ker̤agáy) ښځ.م. اوار دایروي لوښی چې له لښتو څخه جوړېږي.

**کېړۍ** (ker̤ay) ښځ.م.ج. ځپلۍ، هغه ځپلۍ چې له څرمنې او منځ څخه جوړېږي.

**کېږ** (kež) ص. نر.م. و ګ. کیږ۱).

**کېز** (kiz̤) نر.م. نازل شوی، اوربدلی، کښبی، کیښ.

**کېزدل** (kez̤dál) مص. مت. ایښوول، کېښوول، کېښودل.

**کېزدۍ** (kez̤dáy) ښځ. م. ج. و ګ. کږدۍ.

**کېزلی** (kez̤aláy) نر.م ۱) کږلی، رټلی؛ ۲) ذلیل، حقیر.

**کېزه** (kéz̤a) ص. ښځ.م. وتره، وتره څمکه، اړولو ته برابره څمکه.

**کېس** (kes) نر.م. پت، آب، عزت، ابرو.

**کیسر** (kaysár) ص. نر.م. قیصر؛ ۱) تود سور؛ ۲) هغه بار وړونکی ښاروی چې خوله یې د هوا له امله وچه شي او بیا ناروغه شي.

**کیسه**(۱) (kisá) ښځ.م. (ج. کیسې) ۱) قصه، نکل، مواسه، ناول، داستان؛ ۲) له بدن څخه د خیرې پاکولو وړه کڅوړه چې لاس ته اغوستل کېږي؛ ۳) (بیا.) کڅوړه، خریطه، سیستې، په نباتاتو او ژویو کې هر کڅوړه ډوله جوړښت؛ ۲) جیب.

**کېسه**(۱) (kesá) ښځ.م. ۱) کودالی، کهی، کښبی؛ ۲) کېله، یو خوږه مېوه ده.

**کیسه بر** (kisabūr) ص. نر.م. ګنډکپ، ګنړکپ، ځوک چې جېبونه وهي.

**کیسۍ** (kisáy) ښځ.م.ج. آړه، اړې، کسې، اړونه، لغز، چیستان.

**کېسۍ** (kesáy) ښځ.م. و ګ. کېڅۍ.

**کیسي** (kaysí) نر.م. ج. قیسي، خورماني، یو ډول زردالو دی، رنګ یې سپین او څه سوروالی لري.

**کېش** (keš) نر.م. (ج. کېشونه) ۱) کېچ، یو ډول سپنسین ښادر دی؛ ۲) دین، مذهب؛ ۳) ګروهه، عقیده؛ ٤) ایین؛ ۵) لاره.

**کیش** (kiš) صوت. نر.م. کیشه، کشې، کیشې، د چرګ او مرغیو د شړلو اواز.

**کیشپ** (kišáp) نر.م (ج. کیشپان) کشب، کیشو، کاسه ګرپ، شمشتی، میچنی، شوتتی.

**کیشک** (kišák) نر.م ۱) ښار او تعقیب؛ ۲) پیره داري.

**کیشکارل** (kiškārál) مص. مت. ښکارل، کشکارل وړتوکول، سپی توکول.

**کیشکره** (kiškára) ښځ.م. ۱) کاغی غونډې یوه خره مرغۍ ده؛ ۲) کاغی، ککېږکه، عکک؛ ۳) یوه مرغۍ ده، په دري کې یې خبرک بولي.

**کیش کیش** (kiškiš) صوت. نر.م. د مرغیو او چرګانو د شړلو اواز.

کیشور (kišór) نر.م. یو ډول ویښته لرونکی او پټ لرونکی چینجی دی.

کښت (keṣt) نر.م. ټینګلر، مقاومت.

کیښکري (kiṣkarí) نر.ج. ۱) زړی، خځوزی؛ ۲) چزغولی، زربوکی، څغولی.

کښکل (keṣkál) مص.مت. وګ. کښکښل

کښودل (keṣodál) مص.مت. کښوول، ایښودل، ایښوول.

کیښه (kiṣá) ښځ.م. ښیښه، هینداره، آئینه، شیشه.

کیښی (kiṣáy) ص.نر.م. خصي.

کیغاچ (kiğāč) نر.م. ۱) قیغاچ، نامستقیم، کوږ، دځمکې یېوې کولو داسې طرز چې له یوه کونج نه تر بل کونج پورې کار وشي؛ ۲) مج. اړي کوونکی، حاسد، مخالف.

کیف (kayf) نر.م. ۱) د کمیت مقابل، کیفیت؛ ۲) خوند، لذت، خوښي؛ ۳) نشه، مستي.

کیفر (kayfár) نر.م. سزا، جزا، مکافات، د ښو او بدو بدله.

کیفي (kayfí) ص.نب.نر.ښځ.م.ج. د کمي مقابل؛ ۱) ماهیتي، ماهیوي، کیفیت ته منسوب؛ ۲) کیف لرونکی.

کیفیت (kayfiyát) نر.م. ۱) څرنګوالی، د یوه شي صفت، حالت، اوځنګه والی؛ ۲) کیف.

کیفیتي (kayfyatí) نر.ښځ.م ۱) د کیفیت، کیفي؛ ۲) جنجالي، کیفیت لرونکی.

کیک (kek) نر.م. (ج. کیکونه) (پخ.) یو ډول خواږه دي.

کیکار (kikár) جن. ۱) کیکر، ګبین، شات؛ ۲) ډومبکی.

کیکته (kikáta) ښځ.م. یو ډول لړزه ده.

کیکټس (kektás) نر.م. کاکټوس؛ وګ. زقوم.

کیکر (kikár) نر.م ۱) یوه ونه ده چې پاڼې یې ځیږې دي؛ ۲) یو ډول ښکلې کورنی چرګ دی.

کیکوړی (kikóṛay) نر.م. ۱) ککوړی، کوچنی ډوډی، وړه ډوډی؛ ۲) وګ. ریکاټ.

کیل (kil) نر.م. (ج. کیلونه) سیر، کیله، کرک، د پیوې کرښه.

کیل (kel) نر.م. ۱) راز، نیاز؛ ۲) لوبه، مشغولا.

کیلک (kelák) نر.م. ۱) پښندي، ځولانه، د آس د پښې پړی؛ ۲) د تپکي تسمه.

کیلک (kilák) نر.م. کیلیک، ژغنډی، جغلنډی، ژغونډی، زغلنډی، څغلنډی، جغنډی.

کیلو (k(i,e)ló) ت.ت. یو ترنډتوک دی چې په میټریک سیستم کې کارېږي او د «یو زر» مانا لري، لکه دکیلوګرام، کیلوواټ....په کلیمو کې.

کیلوګرام (k(e,i)logrấm) نر.م.د کتلې او زن یو واحد دی چې له زرو ګرامو سره مساوي دی.

کیلول (kelawấl) مص.مت. ۱) د حبوباتو سرسر کول؛ ۲) د غلې او حبوبو ځپ وهل.

کیلومتر (kelomítar) نر.م. کیلومیټر؛ د واټن یا طول یو واحد دی چې له ۱۰۰۰ مترو سره مساوي کېږي.

کیلوواټ (kelowấṭ) نر.م. کیله واټ، د برقي قوې یو واحد دی چې له ۱۰۰۰ واټو سره مساوي کېږي.

کیله (kíla) ښځ.م. ۱) وګ. کیل؛ ۲) د کښت هغه ځمکه چې نږدې ٤٠ جریبه کېږي.

کیله (kelấ) ښځ.م. ۱) یو ډول خوږه میوه ده؛ ۲) چونۍ، کلکه او مضبوطه نظامي کلا.

کیلی (keláy) نر.م. میخک، د ښیم، میخ، د پښې په پوټکي کې کلک ځای.

**کېمپ** (kemp) نر.م. (ج. کېمپونه) و گ. کمپ.

**کيمخ** (kimux) نر.م. کيمخت، ساغري څرمن، تنجه څرمن، يو ډول پخه او دانه داره څرمنه.

**کيمخت** (kimúxt) نر.م. و گ. کيمخ.

**کېمره** (kemrá) ښځ.م (ج. کيمرې) کامره، کمره، يوه آله ده چې انځورونه پرې اخيستل کېږي.

**کېمنډل** (kemanḍál) مص.مت. و گ. کښېمنډل.

**کېمه** (kemá) ښځ.م. دبه، د تورو تېلو لوښی چې له څرمنې څخه جوړ شوی وي، له ګانو څخه تېل پرې را اخيستل کېږي او په نورو لوښو کې اچول کېږي.

**کېميا** (kemyā́) ښځ.م. ۱) کيميا، شيمي، هغه پوهنه چې د مادې له ترکيب، جوړښت، خواصو او تعاملاتو څخه ږغېږي؛ ۲) ګډون، اختلاط.

**کېميابوټی** (kemyābū́ṭay) نر.م. ۱) د کېميا بوټی؛ ۲) د ناوياته والي کنايه.

**کېمياپوه** (kemyāpóh) ص. نب. نر.م. کېمسټ، د کېميا متخصص، درمل جوړوونکی، کېمياګر.

**کېمياګر** (kemyāgár) نر.م ۱) اېلکميسټ، هغه څوک چې د سرو زرو لټون او دارزانو فلزاتو څخه يې د طلا د جوړولو په لاره کې خپل ژوند وقف کړی وي؛ ۲) کېمياپوه.

**کېمياوي** (kemyāwī́) ص. نب. نر. ښځ.م. کېميکل؛ ۱) په کېميا اړوند؛ ۲) نر.م. ښځ.م. جن. هره هغه ماده چې د يوې کېميايي عمليې په وسيله لاس ته راغلې وي يا په داسې عمليه کې کارېږي.

**کين** (kin) نر.م. کينه، بغض، څيل، حسد.

**کېناستل** (kenāstə́l) مص.ل. کښېناستل، کښېنستل.

**کېناستون** (kenāstū́n) نر.م. کېناستنه، ناسته، کښېنستنه، کښېناستنه.

**کېناوه** (kenāwá) ف. کښېناوه، کښېنوه.

**کيندل** (kində́l) مص.مت. کينل، کندل، کنودل، کنستل.

**کينډۍ** (kinḍə́y) ښځ.م. قالب، چوکاټ.

**کينکه** (kinā́ka) ښځ.م. کنه، کنيې، د سپږې تخم او بچي.

**کينګاري** (kingā́ri) ښځ.ج. و گ. کونګاري.

**کينګرۍ** (kingrə́y) ښځ.م. کاږ، کربړ، ميږه کاني، جغل.

**کينل** (kinə́l) مص.مت. کيندل، کنستل، کنودل، کندل.

**کينودی** (kinóday) نر.م. سورنګ، سرنګ، اوږد نقب.

**کېنول** (kenawə́l) مص.مت. و گ. کښېنول.

**کينه** (kiná) ښځ.م(ج. کينې) ۱) دښمني، عداوت؛ ۲) کرکه، نفرت، تنفر؛ ۳) غچ، بدله، انتقام؛ ٤) رخه.

**کينه ګر** (kinagár) ص. نر.م.ج. کينه توز، کينه کښ، کينه کوونکی، د کينې خاوند.

**کيڼ** (kiṇ) ص.نر.م.ج. چپ، ګڅ، ګڅی، د ښي ضد.

**کيڼ ګرز** (kiṇgárz) نر.م. (عس.) کيڼ ګرځ، يوه قومانده ده چې د هغې په ورکولو سره عسکر خپل کيڼ لورته د ۹۰ درجو په اندازه ګرځي.

**کيڼی** (kiṇáy) ص.نر.م. ۱) ګڅی، چپی، کيڼ لاستی؛ ۲) نر.م. يو ډول سارانی نبات دی.

**کېواته** (kewātá) نر.ج. ۱) کښېواته، کېوته، ګبرېده؛ ۲) کوزېده، کښېته کېږه (له موټر، اس يا ...).

کیواړ (kiwā́r) نر.م. کولپ، قلف، قفل، جندره.
کیوبیزم (kyūbizam) نر.م. (نق.) کوبیزم، د عصري نقاشۍ يو مکتب دی چې د طبيعت د ريالستيک څرګندون پرځای په انځورو کې له هندسي کرښو، مکعبو او داسې نورو مجردو او ذهني شکلو څخه کار اخلي او سيوری له منځه وړي.
کېوتل (kewatā́l) مص. مت. ۱) کښېوتل، ګېرېدل، اخته کېدل؛ ۲) راکوزېدل.
کیوتین (kyūtin) جن. (بو.) موم وزمه ماده ده چې د سيليولوس په ګډون د ډېرو نباتاتو پوستکی جوړوي.
کېول (kewā́l) نر.م. د يو ډول ګل نوم دی.
کېون (keun) نر.م (ج. کهونونه) میتی، کهونګی، لکه د تسکورې په څېر د تيږو او بوټو ويستلو يوه آله ده.
کېونګی (keungay) ص. نر.م. د کېون مصغر، و ګ. کېون.
کیهان (kayhā́n) نر.م. ۱) جهان، نړۍ، دنيا؛ ۲) روزګار؛ ۳) فضا، هوا.
کیی (kayā́y) نر.م. کيی؛ ۱) کرکی، نی (قلم)؛ ۲) دورمه، نی.

# گ

**گ** (gāf) نر.م. د پښتو الفبې څلوردېرشم توری چې ابجدي ارزښت يې «۲۰» دی.

**گابږ** (gābáž) نر.م (ج. گابږونه) خوفناک، وېروونکی، ډاروونکی.

**گاپه** (gā́pa) ښځ. م. (ج. گاپې) ډوغل، کنده، خړخوړی، خاړخوړی.

**گات** (gāt) نر.م. (ج. گاتونه) محصول، ټيکس.

**گاترۍ** (gātráy) ښځ. م. ج. گاترۍ، لور، يو ډول لور دی چې د اړې په څېر غاښونه لري.

**گاتريار** (gātryā́r) فا. نر.م. د آسونو لپاره زين جوړوونکی.

**گاتل** (gātə́l) مص. مت. ژوبلول، ټپي کول، زخمي کول، گواتل.

**گاتمونی** (gātmū́nay) نر.م. (ج. گاتموني) گتموسی، اورلړونی، شکروه، د اور لړلو لرگی.

**گاټ** (gāṭ) نر.م. ۱) محصول، چونگی؛ ۲) گټ، غټ کانی؛ ۳) څوکيدار، پهره دار.

**گاټرۍ** (gāṭrə́y) ښځ.م.ج. پنډوکی، پنډه کی، گاټلۍ، غوټه، گنډه، گېډۍ، گالۍ، بنډل.

**گاټلۍ** (gāṭlə́y) ښځ.م. ج. غوټه، گنډه، پنډه کی، گېډۍ.

**گاټه** (gā́ṭa) ښځ.م. (ج. گاټې) ۱) ټينگ مايع شی؛ ۲) په وياله کې د اوبو کمبدنه؛ ۳) نيمگړتيا، کمی؛ ٤) گواټه، د څپياکو ډېرۍ.

**گاټی** (gā́ṭay) نر.م (ج. گاټي) ۱) گاټ ټولوونکی، محصول ټولوونکی، عشر اخيستونکی، تحصيلدار؛ ۲) د سترگو ککۍ، د سترگو تور و سپين.

**گاټي** (gā́ṭi) نر.ج. ۱) واړه کاني؛ ۲) د گاټی جمع. د سترگو تور و سپين.

**گاټۍ** (gāṭə́y) ښځ.م. ج. گېټۍ، د چلم گېټۍ.

**گاجره** (gājára) ښځ.م. (ج. گاجرې) گازره، زردکه.

**گاچ** (gāč̌) نر.م. (ج. گاچونه) نازک یا نری توکر، یو ډول نازکه وربښمینه توټه، گاچی.

**گاچی** (gāčáy) نر.م. (ج. گاچي) شپولغالی، پنډغالی، شپول، د رمې پنډولو ځای.

**گاځ** (gāc) نر.م. ج. گال، غوښت، یو ډول وړې وړې دانې دي چې له انسانانو پرته د مرغانو خوراک هم دی.

**گاډړ** (gādáṛ) ص. نر.م. (ج. گاډړان) بې عقله، ناپوه، نادان.

**گاډر** (gādə́r) نر.م. (ج. گاډرونه) د اوسپنې تیر یا بش.

**گاډی**[1] (gāḍə́y) ښځ.م.ج. بگی، ټانگه.

**گاډی**[2] (gāḍə́y) ښځ.م.ج. ډبر، سومبی، کونه.

**گاډی** (gāḍay) نر.م. (ج. گاډي) موټر، گاړی، د سپرلیو یا سامان آلاتو د وړو راوړو یوه وسیله لکه موټر، لاری او...

**گاډی بول** (gāḍayból) نر.م. موخی، پیتو، له تیکرې نه جوړه شوې موخی چې کوچنیان ورباندې لوبې کوي.

**گاډي پلور** (gāḍiplór) نر.م. گاډي پلورنه، گاډي پلورنځی، موټر پلورنځی، موټرپلورنه.

**گاډي پلوری** (gāḍiplóray) ص. نر.م. (ج. گاډي پلوري) گاډي پلورونکی، موټر خرڅوونکی، موټر فروش.

**گاډی چلوونکی** (gāḍayčalawū́nkay) فا.نر.م و گ. گاډیوان.

**گاډېر** (gāḍér) نر.م. گاډېل، گاډېله، دغنمو، جوارو له گډو شویو اوړو نه پخه شوې گډوله ډوډۍ.

**گاډېنی** (gāḍenáy) ښځ.م.ج. گاډی، گیراړی، د کوچنیانو د لوبو یوه آله چې رغړول کېږي.

**گاډی والا** (gāḍaywālā́) نر.م. ۱) د گاډي خاوند؛ ۲) گاډیوان، گاډی چلوونکی.

**گاډیوان** (gāḍiwā́n) ص.نر.م. د گاډي چلوونکی، گاډي والا، بگی والا.

**گار** (gār) نر.م. (ج. گارونه) ۱) تاوان، نقصان؛ ۲) ص. وران ویجاړ، ضایع، توی؛ ۳) لاحقه.

**گارډ** (gārḍ) نر.م. ساتندوی، ساتندویان، گارد، د چارواکو د ژغورنې یا ساتنې ټولی.

**گارکی** (gārkə́y) ښځ.م. بې نظمه او وروکی کور، کورگی.

**گارنیزون** (gārnizū́n) نر.م (ج. گانیزونونه) چونی، د ښار د امنیت ساتنې لپاره پوځي کلا.

**گارو** (gārū́) نر.م. یو ښه بوی والا بوټی دی چې سپین گل کوي.

**گارول** (gārawə́l) مص. مت. تاوانول، نقصان کول، گارونگ، گارونه.

**گاره** (gā́ra) ښځ.م. (ج. گارې) ۱) د گنو ډبرو چې تر خاورو لاندې پټه کړی شوې وي. ۲) سمځه، په غره کې طبیعي غار؛ ۳) شگلنه او کانیزه ځمکه.

**گارې** (gā́re) ص.ج. شلېدلې، ټوټې ټوټې، رنجې رنجې، خیرې پیرې، گارې بگارې، گارې وارې.

**گارېدل** (gāredə́l) مص.ل. تاوانېدل، نقصانېدل، بې فایدې خرڅ کېدل، گارېدنه، گارېده.

**گارې گرېتې** (gāregríte) ص.ج.و گ. گارې.

**گارې وارې** (gārewā́re) ص.ج. ټوټه، ټوټه، گارې بگارې، شلېدلی.

**گاړ** (gāṛ) ص. نر.م. ۱) گډوډ، وران ویجاړ، ړنگ؛ ۲) نر.م. کاړ، کانیزه ځمکه، ډبرین، تراړه.

**گاړبوزه** (gāṛbū́za) ښځ.م (ج. گاړبوزې) گړگوزه، گاگړوزه، گاړگوزه، له یخنی ړچېدنه.

**گاړکوزی** (gāṛkūzáy) نر.م. گاړبوزی، گړوزی، نینګاړی، گاړګوزی.

**گاړگوتی** (gāṛgū́tay) ص.نر.م.ج. گونجي گونجي وینبته، گوړگوتي، گالگوتي، اړگوتي.

**گاړگونېدل** (gāṛgūnedə́l) مص.ل. وینبته گونجي گونجي کېدل، گالگوتي کېدل.

**گاړل** (gāṛə́l) مص.مت. گډوډول، ورانول، ویجاړول.

**گاړه** (gā́ṛa) ښځ.م. (ج. گاړې) ۱) د مستو ښځ؛ ۲) ژی، ډډه، مورگه؛ ۳) پنډغالی، شپول، گاش، گاچی، خوشته وچه مېوه، چې د خوراک لپاره وچه شوې وي.

**گاړی** (gā́ṛay) ښځ.م.ج. د سپرلیو یا نورو سامان آلاتو د وړلو بگې.

**گاړیال** (gāṛyā́l) نر.م. (ج. گاړیالونه) دېوالي ساعت، لویه گړی چې دېوال ته ځوړندېږي.

**گاړین** (gāṛín) ص.نر.ج. کانیز، شگلن، د کاڼو او شگو.

**گاز** (gāz) نر.م. ۱) غاز؛ ۲) بیاتي، قیچي.

**گاش** (gāš) نر.م. و.گ. گاړه.

**گاښ** (gāṣ) نر.م. و.گ. غاښ.

**گاک** (gāk) نر.م. گاکي، لاگی، بیپاري.

**گاگ** (gāg) نر.م. چینه، رود، ویاله.

**گاگره** (gāgrá) ښځ.م. ۱) کلکه باجري، سره نښتي کاني؛ ۲) نر.م. یو ډول کوتره.

**گاگریه** (gāgnyá) ص.ښځ.م. د گاگرې، کومه ځمکه چې سره نښتي تیږې ولري.

**گاگړ** (gāgáṛ) ص.نر.م. چاغ او څورب سړی، دبو صفته سړی.

**گاگړه** (gāgaṛa) ښځ.م. (ج. گاگړې) ۱) د کوچنیانو په خوله پخه خبره؛ ۲) زره پخه ښځه.

**گاگه** (gā́ga) ښځ.م. (ج. گاگې) ناوه، پرناله.

**گاگی** (gāgáy) نر.م. ځروی، څېره، وېروونکی چې په کروندو کې د مرغانو او ځناورو د وېرولو لپاره درول کېږي.

**گاگی** (gāgə́y) ښځ.م. په گاگ پورې اړوند. و.گ. گاگ.

**گاگیر** (gāgír) نر.م ۱) بې پروا؛ ۲) وارخطا، سرهوا کاواک، سرایله.

**گاگیرتوب** (gāgirtób) نر.م. بې پروایي، گاگیرتیا.

**گاگیرول** (gāgirawə́l) مص.مت. بې پروا کول، هواگیرول.

**گاگیره** (gāgirá) ښځ.م. بې پروا، وارخطا، سرهوا، هغه چرگه چې ترهگیو اچولو وروسته نوره پرځای نه کښېني.

**گاگیرېدل** (gāgiredə́l) مص.ل. بې پروا کېدل، هواگیرېدل.

**گاگېړی** (gāgéṛay) ص.نر.م. ۱) کم عقل؛ ۲) چتیات ویونکی؛ ۳) خیرن سړی.

**گاگېړنه** (gāgeṛána) ص.ښځ.م. چتله او خیرنه، مردار خوره ښځه.

**گاگېل** (gāgél) نر.م. انگار، سور اور.

**گالکوتی** (gālkū́tay) نر.م. و.گ. گاړگوتی.

**گالل** (gālə́l) مص.مت. ۱) زغمل؛ ۲) ساتل، محفوظول؛ ۳) سرته رسول، خلاصول.

**گالي گېټي** (gālegéte) ښځ.م. ویتي چیتي، ناز او نخرې، گالي گیچې.

**گالي گېچي** (gālegéče) ښځ.م. ناز او نخرې.

**گالی** (gālə́y) ښځ.م. و.گ. گاټری.

**گام** (gām) نر.م. (ج. گامه، گامونه) ۱) قدم، له یوه قدمه تر بل قدمه فاصله؛ ۲) مج. اندازه؛ ۳) تېرېدل.

گام پر گام (gāmpərgā́m) ق. نر. م. پرلپسې، پلۀ پر پلۀ، قدم پر قدم.
گامور (gāmawár) ص. نر. م. د اوږدو قدمو خاوند، لوی لوی گامونه اخیستونکی.
گامول (gāmawə́l) مص. مت. اندازه کول، په قدمونو اندازه کول، گامونه.
گامېدل (gāmedə́l) مص. ل. په قدمونو ځمکه اندازه کېدل، کچ کېدل، گامېدنه.
گامېښه (gāméṣa) ښځ. م. وگ. مېښه.
گان (gān) ص. نر. م. ۱) لایق، موزون؛ ۲) لاحقه ده چې د ځینو مذکرو نومونو په پای کې راځي او جمع جوړوي، لکه: آلو – آلوگان.
گانټو (gānṭū́) نر. م. کوره، یو ډول کوره.
گانټه (ganṭa) ښځ. م. گېنټه، ساعت، گړی.
گانچه (gānčá) ښځ. م. یو ډول نښه یي څېز، چې ځښل کېږي.
گانده (gā́nda) ص. گهانده، گهنده، سبا، راتلونکی وخت، آینده زمانه، مستقبل.
گاندی (gānday) ښځ. م. ۱) د گانۍ یا ارهټ میل چې غوایان یې گرځوي؛ ۲) یو ډول گانه.
گانډو (gānḍū́) نر. م. کوني، کونه ورکوونکی، مفعول.
گانډوله (gānḍúla) ښځ. م. د پښو په سر د ناستې طریقه.
گانډولی (gānḍólay) نر. م. گنډولی، کمیس، گنډی.
گانډه (gā́nḍa) ښځ. م (ج. گانډې) ۱) پرتوغابښ؛ ۲) غټ پنډه کی، گنډه؛ ۳) یو ډول پسول.
گانډۍ (gānḍáy) ښځ. م. ج. د شاتو د مچیو ځاله.
گانډی (gānḍay) نر. م. ورخ، بند، تړه.
گانډیاله (gānḍyā́la) ښځ. م. (ج. گانډیالې) وگ. گنډیاله.

گانډېل (gānḍél) نر. م. ۱) غندلی، د شړشمو سابه؛ ۲) هغه پیاز چې تخم لپاره پرېښودل کېږي.
گانزه (gānzá) ښځ. م. د لاس ځلورمه گوته، هغه گوته چې گوتمۍ ورا غوستل کېږي.
گانکړ (gānkáṛ) نر. م. گانگړ، دایره، حلقه، شپول.
گانگوړه (gānguṛa) ص. ښځ. م. (ج. گانگوړې) ترټرۍ، هغه خبره چې په نښتې ژبه وکړی شي، ترټره.
گانگوړی (gānguṛ́ay) ص. نر. م. ترټری، تتری، هغه څوک چې نښتې خبرې کوي.
گانه (gāná) ښځ. م. (ج. گانې) لوبه، سندره، په ترنم سره د شعرونو ویل.
گانۍ (gānə́y) ښځ. م. ج. د گونگرو گانو پټۍ چې د څارویو په غاړه کې اچول کېږي.
گاني (gāní) نر. م. د آسمان تر ځلورمې برخې د لمر! جگېدل.
گاڼل (gāṇə́l) مص. مت. پسولل، گاڼه وراچول، سینگارول، جوړول.
گاڼه (gāṇá) ښځ. م. (ج. گاڼې) ۱) پسول، کالي؛ ۲) گرو.
گاڼه چي (gāṇačí) ص. نر. م. هغه څوک چې د چا ځمکه په گاڼه واخلي.
گاڼه وال (gāṇawā́l) ص. نر. م. گروي دار.
گاڼه وړی (gāṇawáṛay) ص. نر. م. گاڼې والا، گروی والا.
گاڼه ییز (gāṇayíz) ص. نر. م. گاڼه شوی، گرو شوی لکه کور.
گاڼه ییزه (gāṇayíza) ص. ښځ. م. (ج. گاڼه ییزې) گاڼه شوې، گرو شوې لکه ځمکه...
گاڼۍ (gāṇə́y) ښځ. م. ج. د تېلو یا گنیو کارخونه.

**گانی مار** (gāṇaymā́r) ص. نر.م. گانی مار، د گانی مزدورکار، گانی وال.

**گانی وال** (gāṇaywā́l) ص. نر.م. د گانی خاوند، گانی لرونکی سړی.

**گاوچو** (gāwčū́) نر.م. هغه ترنګړ چې د زنبېل غوندې دوو خواوو ته لرګي ولري.

**گاور** (gāwár) نر.م. قهر، غوسه، غضب.

**گاوز** (gāwáz) نر.م. (ج. گاوزونه) غرڅه، یو ډول غرنی حیوان چې لوی لوی ښکرونه لري.

**گاوسره** (gāwsára) ښځ.م. و گ. گاولی.

**گاوشاړه** (gāwšā́ṛa) ښځ.م. یو ډول مرغۍ ده.

**گاوله** (gā́wla) ښځ.م. (ج. گاولې) بوټان، پایزار، یو ډول بوټان چې کوچیان یې اغوندي.

**گاولی** (gā́wlay) نر.م. ۱) گاوله؛ ۲) گاوسره؛ ۳) واسکټ.

**گاومېښ** (gā́wmeṣ̌) نر.م. سنډا، د مېښې نرینه.

**گاوڼ** (gā́waṇ) نر.م. د ښځو گډا او سرود.

**گاونډی** (gāwanḍáy) نر.م. همسایه، کوځه شریک، خواته اوسېدونکی.

**گاونډتوب** (gāwanḍtób) نر.م. گاونډیتوب، په یوه چم کې نېږدې نېږدې سره اوسېدنه.

**گاونه** (gā́wna) ښځ.م. هغه لرگینه پاړه چې په گانی کې گوره پرې لړل کېږي.

**گاووکی** (gāwū́kay) ښځ.م. د ښځو د پېکي یو ډول اوبدل یا جوړول.

**گاوه** (gāwá) ښځ.م. لاوڼ، کړو، تودې کړې شوملې.

**گاوېز** (gāwéz) نر.م. غټه بېډۍ، غټه سپېښته.

**گاهر** (gāhár) نر.م. پاده، گورم، گوار.

**گاهک** (gāhák) نر.م. ۱) گواښنده، گواښونکی؛ ۲) پېرونکی، اخیستونکی.

**گاهنامه** (gāhnāmá) ښځ.م. کلیز، جنتري.

**گاهو** (gāhū́) ص. نر.م. پاده وان، شپون.

**گاهی** (gā́hay) نر.م. ژور زخم، ژور ټپ.

**گای** (gāy) نر.م. ژمنه، لوز، قول، وعده.

**گایل** (gāyál) نر.م. ۱) ټپي، ژوبل، زخمي؛ ۲) مص. زخمي کول، کېلول، ځورول.

**گایېدل** (gāyedә́l) مص. ل. خبرې کول.

**گب** (gab) نر.م. ۱) غټ، څورب؛ ۲) سور و سپین؛ ۳) په گېډه بچی.

**گبر** (gábar) نر.م. ۱) اور لمانځونکی؛ ۲) مج. کافر.

**گبری** (gábray) نر.م. ترهېدلی، اوتر، وارخطا.

**گبرۍ** (gabrә́y) ښځ.م. گېټس، د جرابو بند.

**گبړه** (gabṛá) ښځ.م. غټه گټه، د کاڼي پلنه تخته چې د پورته کېدو وړ وي.

**گبړي** (gabṛí) نر.م. و گ. گنی.

**گبڼ** (gabáṇ) نر.م. حمل، بار، بچی.

**گبڼۍ** (gabaṇә́y) ښځ.م. ۱) حامله، بلاربه؛ ۲) ربړېدنه، گړبېدنه، ترېدنه.

**گبڼې** (gabaṇé) ښځ.م.ج. بگنې، دیوې غرنۍ ونې د مېوې نوم دی چې کروړې ته ورته ده.

**گبه** (gabá) ښځ.م ۱) و گ. گبره؛ ۲) یوه تېره ده چې کوچنیان یې د لوبې په وخت کې په لرگي وهي.

**گبین** (gabín) نر.م. عسل، گبینه، انگبین.

**گبین ژاوله** (gabinžā́wla) ښځ.م. موم، د شاتو پاتې شونې.

**گبین وږی** (gabinwáẓ̌ay) نر.م. د گبینو چک یا تمبکه، د گبینو گگ، گبین پیاڅه.

**گبینی** (gabínay) نر.م. و گ. گبین وږی.

**گپ** (gap) نر.م. ۱) په وربڅو کې لاره؛ ۲) ټوکه، گپه، گپ شپ، ټوکه ټکاله؛ ۳) غټه مرۍ.

**گپاگپ** (gapāgáp) نر.م. ژر ژر خوړنه.

**گپاله** (gapā́la) ښځ.م. غټه مړی خوړنه.

**گپاوو** (gapā́wū) ص. نر.م. ډېرې خبرې کوونکی، گپي، کړتو.

**گپړشپړ** (gapaṛšapáṛ) نرم کپړ سپړ، گډې وډې خبرې، اپلتې.

**گپن** (gapán) نر.م. یو ډول توپ.

**گپندی** (gapandáy) ښځ.م. یو ډول توپ.

**گپڼ** (gapáṇ) نر.م. ۱) ناکاره؛ ۲) خوړین.

**گپو** (gapū́) ص. نر.م. ۱) کړتو، قړتو، چې یوازې خبرې کوي؛ ۲) و گ. گپي.

**گپه** (gapá) ښځ.م. ۱) غټه مړی؛ ۲) لنده خاوره؛ ۳) لوټه، چم؛ ٤) وړوکی کمر؛ ٥) توکه ټکاله.

**گپ گپه** (gapgapá) ښځ.م. کنډه، غونډاری، چم.

**گپي** (gapí) ص. نر.م. ۱) ملنډي، مزاقي، توکي؛ ۲) جلب، تر سپړی، ملونه، واگه؛ ۳) پېزوان، د مال د پوزې پېزوان، مار.

**گپی** (gapáy) نر.م. ۱) کېږ لاسی، چپی؛ ۲) هغه پړی چې د واگو پر ځای کارېږي.

**گتاوه** (gatāwá) ښځ.م. اړداوه، بتاوه، د ښاروېو خوراکه چې له بوسو سره نوري داني گډې شي.

**گتکه** (gatká) ښځ.م. ۱) هنر، مهارت؛ ۲) دوکه، چل؛ ۳) د چا د وژلو سلا؛ ٤) قلعي.

**گتکه بازي** (gatkabāzí) ښځ.م. دوکه بازي، غولونه، دوکه کونه.

**گتگتی** (gatgutáy) ص.نر.م. بدنام، سپک شوی.

**گتکی** (gatkáy) نر.م. یو ډول توپ لوبه.

**گتلکه** (gatláka) ښځ.م. ۱) پېغلتوب، ښایسته جلی؛ ۲) هغه جلۍ چې په بډو کې ورکول کېږي.

**گتلی** (gatláy) ښځ.م. ۱) یو ډول پلن سپېره بوټی دی؛ ۲) یو ډول پنې یا موچنې دي.

**گټي** (gaṭí) نر.م.ج. ۱) هغه زړوکی چې سینې په کې پټې وي؛ ۲) بوجگی.

**گټ** (gaṭ) نر.م. ۱) غټ کاڼی، کنډه، گوسه؛ ۲) توره وربځ؛ ۳) د دېوال کنج؛ ۲) تر واده یوه یا دوه ورځې مخکې د جلۍ د پلار کره د ناستې ځای.

**گټکی** (gaṭkáy) نر.م. ۱) و گ. گټ؛ ۲) زړی، مندکه، د مېوې تخم.

**گټکی** (gaṭkáy) ښځ.م. گیټی، جغل، واړه کاڼي.

**گټل** (gaṭə́l) مص. مت. ۱) گټه موندل، گټه کول؛ ۲) غچ اخیستل؛ ۳) په مقابله کې بریالي کېدل.

**گټلی** (gaṭláy) ښځ.م. گنډه، غوټه، پنډه کی.

**گټندوی** (gaṭandóy) فا.نر.م. گټه کوونکی، گټمن.

**گټن** (gaṭán) نر.م. و گ. گټل.

**گټنگوی** (ganṭangóy) فا.نر.م. غم خوار، فریاد رس، هغه څوک چې په بده ورځ لاس نیوی کوي.

**گټنه** (gaṭə́na) ښځ.م. گټه کول.

**گټور** (gaṭawár) ص.نر.م. فایده من، مفید.

**گټونکی** (gaṭū́nkay) نر.م. ۱) گټندوی، گټه کوونکی، بریالی، سوبمن.

**گټه** (gáṭa) ښځ.ج. ۱) سود، نفع، حاصل؛ ۲) کاڼی؛ ۳) غټه گوته.

**گټه** (gáṭa) ښځ.م. ۱) گردنی؛ ۲) د لسو کارتوسو شمېره.

**گټه من** (gaṭamán) ص.نر.م. گټمن، گټور.

**گټه وټه** (gáṭawáṭa) ښځ.م. گټه خته، گټه پچه، نفع، فایده.

**گټیالی** (gaṭyāláy) نر.م. و گ. گټور؛ گټونکی.

**گټی رنگ** (gaṭayráng) نر.م. ۱) آسماني رنگ؛ ۲) د آبي رنگو سترگو خاوند.

• ګټير (gaṭír) ص. نر.م. د غره کږلېچ، تاو راتاو.

ګټين (gaṭín) نر.م. د ګټو او تيږو ځای.

ګټينه (gaṭína) ښځ.م. ګټې لرونکې ځمکه، تيږنه ځمکه.

ګج (gaj) نر.م. يو ساراني بوټی دی چې له ولېو څخه يې يړی جوړوي.

ګجات (gajā́t) نر.م. پاسو، شوم، بخيل.

ګجاتي (gajātí) ښځ.م. بخيلي، شومتوب.

ګجره (gajára) ښځ.م. (ج. ګجرې) د ښځو د لاسونو د سرو يا سپينو زرو بنګړي، ګجرۍ.

ګجرۍ (gajrə́y) ښځ.م. و.ګ. ګجره.

ګج ګول (gajgól) نر.م. و.ګ. ګچ وګول.

ګجوله (gajawála) ښځ.م. يو ډول دوا ده چې له اوربشو نه جوړېږي.

ګجولۍ (gajolə́y) ښځ.م. کجۍ، کړه وړه.

ګجوی (gajwáy) نر.م. د بوټو شيدې.

ګجوينه (gajwína) ښځ.م. د اوربشو او د غنمو د ګډو اوړو ډوډۍ، ګډوله، ارګجه.

ګجه (gajá) ښځ.م. ۱) د شفتالو زړی؛ ۲) د ببېديو يو ډول لوبه، د ګيټو لوبه.

ګچ (gač) نر.م. ۱) سپينونه؛ ۲) ملهم؛ ۳) يو ډول سپينه معدني خاوره ده؛ ٤) د تګ په وخت کې له سينې سره د اوښ د مټ لګېدل.

ګچ بټۍ (gačbaṭə́y) ښځ.م. د ګچ د پخولو بټۍ.

ګچګر (gačgár) ص. نر.م. ۱) رنګو، ختګر، د ګچ کار کوونکی؛ ۲) ګلکار، معمار.

ګچل (gačə́l) مص. مت. ګچ ورکول، سپينول.

ګچ ځای (gačjā́y) نب. د ګچ معدن.

ګچنه (gačə́na) ښځ.م. و.ګ. ګچل.

ګچ وګول (gačugól) نر.م. حيران دريان، اريان دريان، هېښ پېښ.

ګچول (gačū́l) ص. نر.م. آوارهٔ ګرد، بې فايدې ګرځېدونکی، وزګار، ولګرد.

ګځ (gaǰ) نر.م. ميده شوی، ميده، ټکېدلی.

ګځاري (gaǰā́ri) نر.ج. ۱) نسوار؛ ۲) ګيزاري.

ګځموځی (gaǰmū́ǰay) ص.نر.م. ګځموزی، هغه سړی چې د زړه راز چاته نه ښکاره کوي، ګونګ.

ګځموږی (gaǰmū́ẓay) نر.م. د شړومبو پر سر هغه کوچ چې لا تول شوي نه وي.

ګڅ (gac) نر.م. کيڼ، چپ.

ګڅه (gacá) ښځ.م. ګوسه، ډيکه، ټېله، ګسه.

ګڅه (gáca) ښځ.م. د منځوی او کچی ترمنځ ګوته، ځلورمه ګوته، لاکوکړه.

ګڅی (gácay) نر.م. کيڼ لاسی، چپی، چپ لاسی.

ګد (gad) نر.م. سوال، خواست.

ګدا (gadā́) ص. نر.م. چړګر، سوالګر، دروېزګر.

ګداتوب (gadātób) نر.م. ګدايي توب، ملنګي، سوال کونه، ګداګري، ګدايي.

ګداز (godā́z) نر.م. سوز، سول، ويلېدنه.

ګدام (godā́m) نر.م. و.ګ. ګودام.

ګدام دار (godāmdā́r) ص. نر.م. د ګدام واکدار، د ګدام خاوند.

ګدانه (gadā́na) ص. ښځ.م. و.ګ. ګدا.

ګدره (godará) ښځ.م. لاړی، ډاګه، د ستک، بروړ.

ګدری (godráy) ښځ.م. ۱) کندری، د فقيرانو يو اوږد څادر دی؛ ۲) البم، البوم.

ګدګودام (gadgodā́m) نر.م. ۱) لړزګرز، نوی زوړ؛ ۲) د بګ شريک، ګډ؛ ۳) مج. کس ناکس.

ګدله (gadála) ښځ.م. کند، زړه جامه، ګنځ.

ګدلۍ (gadlə́y) ښځ.م. کرتۍ، چپنه.

ګدم (gadám) نر.م. ۱) يو ډول دماغي ناروغي؛ ۲) د سکتې ناروغي؛ ۳) مبرګي.

**گدود** (gadū́d) نر.ج. رسولي، غوټه، یو ډول غدود چې د ناروغۍ له امله پړسېږي او غټېږي.

**گدور** (gadū́r) ص. نر.م. ټيټ، رذيل، پست.

**گده** (gadá) ښځ.م. گدېلې، گدۍ، د حکومت یا پیرانو مسند.

**گدی** (gıdáy) ص. نر.م. کم عقل، نادان، ناپوه.

**گدیکه** (gadíka) ښځ.م. د څرخي لرگی چې تار پرې رېشل کېږي.

**گدېلې** (gadelé) ښځ.م. زړې او شلېدلې جامې، زړې او خیرنې جامې، گده.

**گدۍ** (gadə́y) ص. ښځ.م ۱) بد رگه او بد عمله ښځه؛ ۲) ښځ.م. مجلس، بنډار؛ ۲) تخت، مسند ۳) د توکر موړه چې د سنډا په څټ کې د رېړې د کشولو پر وخت اچول کېږي.

**گډ** (gaḍ) نر.م ۱) مخلوط، شریک؛ ۲) پیل، شروع؛ ۳) مړ، پسه، غټ پسه.

**گډا** (gaḍā́) ښځ.م. ۱) نڅا، رقص؛ ۲) خوشحالي؛ ۲) لاسولونی، چلمچي.

**گډامۍ** (gaḍāmə́y) ښځ.م. د ښځو او نرو گډه نڅا، گډه گډا، گډ اتڼ.

**گډاندی** (gaḍāndáy) نر.م. همخیاله، همفکره، هماندی، همسوچه.

**گډاندې** (gaḍāndé) ښځ.م. همخیالې، همفکرې، هماندې، همسوچې.

**گډاندیز** (gaḍāndíz) نر.م. همخیالانه، همفکرانه.

**گډبز** (gaḍbáz) نر.م. تربوزک، تمبوزک.

**گډبنه** (gaḍbaná) ښځ.م. شپونکی، گډبه.

**گډبول** (gaḍból) نر.م. گډگول، یو ډول تربو بوټی دی، چې دانې یې د جوارو په اندازه دي.

**گډبون** (gaḍbū́n) نر.م. شپون، هغه چې رمه پیایي.

**گډبه** (gaḍbá) نر.م. گډې څروونکی، شپونکی.

**گډتوب** (gaḍtób) نر.م. سره گډېدنه، گډښت، گډون، گډه، گډتیا.

**گډر** (gaḍár) نر.م. کورنی سپی.

**گډری** (gaḍaráy) نر.م. کورنی چرگ، خسک چرگ.

**گډړک** (gaḍṛák) نر.م. و.گ. شاتینگه.

**گډسوله ییز ژوند** (gaḍsolayízžwánd) نر.م. په سوله کې گډ ژوند، یو تربله د سولې ژوند.

**گډکه** (gaḍká) ښځ.م. تاپوره، تاپوره.

**گډکی** (gaḍkáy) نر.م. د کوچنیانو پای روک.

**گډگاډېر** (gaḍgāḍér) نر.م. گاډېره، گډگډېره، ارگجه، انجړبنجړ، سره گډ کړی شوي.

**گډگډک** (gaḍgḍák) نر.م. و.گ. چیندرۍ.

**گډگول** (gaḍgól) نر.م. ۱) و.گ. گډبول؛ ۲) د یو تربو خوندي بوټي میوه.

**گډل** (gaḍál) نر.م ۱) د شولو په پټي کې په غوایانو سره د منډاوو گرځول؛ ۲) په غوایي سره ختې پخول.

**گډله** (gaḍə́la) ښځ.م. گډلی، د اوربشو او غنمو له گډو اوړو څخه پخه شوې ډوډۍ.

**گډلی** (gaḍálay) نر.م. ۱) و.گ. گډله؛ ۲) د جوارو ډوډۍ، سوکړک.

**گډلی اینښونی** (gaḍálayīṣū́nay) نر.م. مرکب مسند (خبر)، تړښتي کړ لرونکی خبر.

**گډندی** (gaḍandáy) ص. نر.م. نڅاگر، بازینگر، هغه چې گډېږي.

**گډنل** (gaḍnál) نر.م. لاس پلی، لانډیس، د یوې ونې پلې چې د درملو په توگه کارېږي.

**گډو** (gaḍū́) نر.م. هغه چلم چې له بوټي یا کاغذ نه جوړ شوی وي.

**گډوالی** (gaḍwā́lay) نر.م. گډون، گډوډ کېدنه، گډه.

**گډوډ** (gaḍwáḍ) نر.م. ۱) بې ترتیبه، بې طریقې؛ ۲) سره گډ؛ ۳) مج. وران، خراب؛ ٤) ناساز.

**ګډوډ توب** (gaḍwaḍtóh) نـر.م. ۱) ګډوډوالی، بې ترتیبي؛ ۲) ګډون؛ ۳) ورانی؛ ٤) ارګجه توب.

**ګډوډ ول** (gaḍwaḍawə́l) نر.م. ۱) سره ګډول؛ ۲) خلط کول؛ ۳) وارخطا کول؛ ٤) بې ترتیبول؛ ۵) خرابول، ماتول؛ ٦) ارګجه کول.

**ګډوډه** (gaḍwáḍa) ص. ښځ.م. سره ګډ، ګډوله، ارګجه، ګډلی، کوک.

**ګډوډی** (gaḍóḍay) نر.م. ګاډولی، یو سپېره بوټی دی، چې ورې ورې دانې لري.

**ګډوډې** (gaḍwáḍe) نر.ج. و ګ. ګندکی.

**ګډوډېدل** (gaḍwaḍedə́l) مص. ل. ۱) ګډېدل، خلط کېدل؛ ۲) وارخطا کېدل؛ ۳) بې ترتیبه کېدل؛ ٤) خرابېدل، پرېشانه کېدل؛ ۵) ارګجه کېدل.

**ګډورکی** (gaḍū́rkay) نـر.م. ورکوټی ګډوری، ورکوټی ګډ، وری.

**ګډوری** (gaḍū́ray) نر.م ۱) وری، د مېږې نر بچی؛ ۲) جنګي وری.

**ګډوزی**[1] (gaḍū́zay) نر.م ۱) ګانډوزی، ګرېوزی، د خپور والي په حال کې د غټې او شهادت ګوتو د سرونو تر منځ فاصله، ګرېوزی؛ ۲) بالښت، سروبېړدی، تکیه.

**ګډوزی**[2] (gaḍwázay) ص. نـر.م. شـریر، شر اچوونکی، پساتي.

**ګډوکی** (gaḍū́kay) نـر.م. ۱) یو ډول لوبه ده؛ ۲) وډوکی وری؛ ۳) بازینګر، نڅاګر.

**ګډول** (gaḍawə́l) مص. مت. ۱) رقصول؛ ۲) یو ځای کول؛ ۳) خپرول؛ ٤) تاوول؛ ۵) شاملول؛ ٦) شاټول؛ ۷) محتاجول.

**ګډوله** (gaḍulá) ص. ښځ.م. له هر ډول غلې نه ګډه بخه شوې ډوډی

**ګډولی** (gaḍoláy) ص. نر.م. اپوټه، اړولی، پړمخې.

**ګډون** (gaḍū́n) نر.م ۱) سره یو ځای کول، شریکول؛ ۲) اختلاط کول؛ ۳) شراکت کول.

**ګډونبیه** (gaḍūnbáya) ښځ.م. د ګـډون نـرخ، وجه اشتراک، حق الشمول، حق الاشتراک.

**ګډووي** (gaḍuwī́) فا. نر.م. ځرخباني.

**ګډوه** (gaḍwá) ښځ.م. لوټکه، لوټه، مسي کوزه.

**ګډوی** (gáḍway) نر.م. اوږد غاړې کـوزه، ګـډوه، صراحي.

**ګډه** (gáḍa) ښځ.م ۱) مېږه؛ ۲) اشتراک؛ ۳) د مال لپاره بوس او شنه ګیاه سره ګډول؛ ٤) مشهوره، عامه؛ ۵) یو ځای، ګډ ګاډېر.

**ګډه امی** (gaḍaāmáy) ښځ. د ښځو او نارینه و ګډه نڅا او اتڼ.

**ګډه غونډله** (gaḍağwanḍla) ښځ.م. مرکبه جمله.

**ګډه ګډوله** (gaḍagaḍóla) ښځ. بې نظمي.

**ګډه وډه** (gaḍawáḍa) ښځ.م. ۱) سـره ګـډ؛ ۲) بې ترتیبي؛ ۳) وارخطا.

**ګډهل** (gaḍhál) نر.م. ۱) د اوبو لوی لوښی، سطل، بالټی؛ ۲) منګی، بوکه.

**ګډه هل** (gaḍahál) نب. د ځمکې کنده یا کوټی.

**ګډی** (gaḍáy) ص. ښځ.م. پلیته او زناکاره ښځه.

**ګډی** (gaḍáy) نـر.م. ۱) مجلس، صحبت؛ ۲) مړ؛ ۲) مخلوط النسله عالم.

**ګډی** (gaḍáy) نر.م. پسه، مږ، ښکرور، جنګي ګډ.

**ګډې** (gaḍé) ښځ.ج. و ګ. ګډه ۱).

**ګډی خر** (gaḍayxár) ص. نر.م. نادان، کم عقل.

**ګډېدل** (gaḍedə́l) مص. ل. ۱) مخلوط کېدل؛ ۲) رقصېدل؛ ۳) په خبرو کې داخلېدل؛ ٤) په اوبو کې ګډېدل؛ ۵) شریکېدل

**ګډېر** (gaḍér) نر. ۱) اختلاط، مجلس؛ ۲) ګډون؛ ۳) شاتینګه.

**گړېره** (gaḍerá) ښځ.م ۱) ګډون، غونډه، مجلس، ټولنه، جلسه؛ ۲) ارګجه.

**ګړېری** (gaḍeráy) نر.م. و ګ. ګړوبی.

**ګډېله** (gaḍéla) ښځ.م. ۱) ګډ، مخلوط؛ ۲) له غنمو او نورو غلو نه ګډه پخه شوې ډوډۍ.

**ګړېوه** (gaḍewá) ښځ.م. ۱) لوټه، ګړوی؛ ۲) پیاله یا کنډول چې له منګي نه پرې او به څښل کېږي؛ ۳) کڅوره

**ګډې وډې** (gaḍéwaḍé) ښځ.ج. کاواکې خبرې.

**ګذر** (guzár) نر.م. ۱) چم، کوڅه؛ ۲) ګودر؛ ۳) لاره.

**ګذشت** (guzáśt) نر.م. ۱) زغم؛ ۲) حوصله، برد باري؛ ۳) مج. بخښنه، له یو شي نه تېرېدل.

**ګر** (gar) نر.م. ۱) مصیبت؛ ۲) ظلم، جبر؛ ۳) غر؛ ۴) خارښت؛ ۵) چل، هنر؛ ۶) داو؛ ۷) لاحقه، لکه جادوګر؛ ۸) دجامو د ځیرېدو آواز.

**ګرا** (gará) نر.م. ۱) نوکر، مربی؛ ۲) نایي؛ ۳) یو ډول بېلچه، چاړي؛ ۴) دبېړیو یو ډول لوبه.

**ګراب** (garáb) نر.م. تبق، دڅارویو یوه ناروغي.

**ګراتی** (garātáy) ښځ.م. یو ډول کرتی.

**ګراټه** (garáṭa) ښځ.م. (ج. ګراټې) څپیاکه، ټپیاکه، ګواټه، د څپیاکو ډېرۍ.

**ګراج** (garáj) نر.م. ګراج، د موټرو د ودرولو کوټه.

**ګرارېی** (grārbáy) نر.م. غاړکی، امېل.

**ګراري** (garārí) نر.م. ګرارې لرونکی.

**ګراری** (garāráy) ښځ.م. غاښونه لرونکې ګاډینی چې په ماشینونو ګرځولو کې کارېږي.

**ګرام** (grām) نر.م. ۱) د وزن یو واحد؛ ۲) سیمه، استوګنځی، ټاټوبی.

**ګرامر** (grāmár) نر.م. ژبنی دستور، د ژبې قواعد وضوابط، د صرف و نحوې علم.

**ګراموفون** (grāmufún) نر.م. یوه ماشیني آله ده چې له ریکارډ نه آواز باسي.

**ګرامي** (grāmí) ص. نب. ۱) ګران بیه، ارزښتمن؛ ۲) قدرمن، عزتمن.

**ګران** (grān) نر.م. ۱) مشکل؛ ۲) قیمتي؛ ۳) ص. محبوب، خوږ؛ ۴) مج. درونډ.

**ګران ومنلی** (grānu manálay) نر.م. ښاغلی او منلی، عزیز و ګرامي.

**ګران بها** (grānbahá) نب. ګران بیه، قیمت بها، ډېره قیمته، قیمتي.

**ګران بیه** (grānbáya) نب. و ګ. ګران بها.

**ګرانتوب** (grāntób) نر.م ۱) ګرانښت، ګرانوالی، ګرانتیا؛ ۲) قیمتي؛ ۳) مشکل والی.

**ګرانپلوری** (grānplóray) ص. نر.م. قیمته خرڅوونکی، ګران خرڅوونکی.

**ګرانپلوري** (grānplorí) ښځ.م. ګران پلورنه، ګران خرڅونه.

**ګراندرملی** (grāndarmálay) نر.م. سخت درملی، صعب العلاج.

**ګرانښت ومنښت** (grānáṣt u manáṣt) نر.م. محبوبیت و مقبولیت.

**ګرانول** (grān awál) مص. مت. ۱) نرخ خېژول؛ ۲) خوښول؛ ۳) مشکلول؛ ۴) نایابول.

**ګراني** (grani) ښځ.م. قیمت لوړېدنه، نرخونه ډېرېدنه، نرخونه لوړېدنه.

**ګرانېدل** (grānedál) مص. ل. بیه اوچتېدل؛ ۲) خوښېدل؛ ۳) مشکلېدل؛ ۴) نایابېدل.

**ګراهه** (grāhá) ښځ.م. یو ډول بېلچه.

**ګرایي** (grāyí) نر.م. شوچنده، یو پر څو.

**ګرباده** (garbādá) ښځ.م. برېوکی، دپېریانو ډولی، د باد چورلنډی.

**گړبړه** (garbára) ص. ښـځ.م. شدياره، غتې غتې لوټې لرونکې ځمکه.

**گربشول** (garbašúl) نر.م. بې نظم و بې ترتيب.

**گربل** (garbíl) نر.م. گربېل، څيرې شوې جامې.

**گربولی** (garbúlay) نر.م. خراشکی، بلغم.

**گربه خورک** (gurbaxorák) نر.م. گربه خور، گلخوره.

**گربېټ** (garbét) نر.م. سوړسک، د جوارو ډوډۍ.

**گربېل** (garbél) نر.م. سوری شوې جامې.

**گربېنی** (garbenáy) نر.م. ۱) د مچيو ځاله، د مچيو تمبکه؛ ۲) د وړو حشرو جاله.

**گرپی** (garpáy) نر.م. يو ډول بوټی دی.

**گرټی** (gurṭáy) نر.م. و گ. گورټی.

**گرج** (graj) نر.م. ۱) کينه، حسد، رخه؛ ۲) ص. کوږ، کږوپ.

**گرجمن** (grajmán) ص. نر.م. رخه ور، کينه ور، حاسد، کينه ناک.

**گرځ** (garǰ) نر.م. دور، گرځېدنه.

**گرځانده** (garǰāndá) ص. ښـځ.م. شـنده، وار گرځونکې، هغـه ښځينه حيـوان چې تېر يـږي خو بلاربيږي نه.

**گرځانه** (garǰāna) ص.نر.م ۱) گرځنده، گرځېدونکی؛ ۲) چورلېدونکی، تاوېدونکی؛ ۳) سيلاني.

**گرځبند** (garǰbánd) نر.م. گرځبندي، د گرځېدنې بندېز، د گرځېدو قيودات.

**گرځپلی** (garǰapálay) ص.نر.م. ظلم ځپلی، اسکيرلی، مظلوم.

**گرځند** (garǰánd) ص. نر.م. و گ. گرځانه.

**گرځندونی** (garǰandúnay) ص.نر.م.و گ. گرځانه.

**گرځندوی** (garǰandóy) ص.نـر.م. سـيلاني، سيلگری، سياح.

**گرځندويي** (garǰandoyí) ښځ.م. سيلاني توب، سيلگري، سياحت.

**گرځنده** (garǰánda) نر.م. ۱) و گ. گـرځانه، سيار؛ ۲) هغه کوچنی چې نوی په گرځېدو راغلی وي.

**گرځنده ټېلفون** (garǰándaṭelfún) نـر.م. گرځند لرغوړون، سيار تليفون، موبايل.

**گرځنده سېنما** (garǰándasenamā́) ښځ.م. گرځېدونکی سېنما، سياره سېنما.

**گرځندی** (garǰandáy) نر.م. ۱) څرخ؛ ۲) کړلېچی، کړليچ؛ ۳) د لوبو پر پرکی، بغندی.

**گرځنی** (garǰanáy) نر.م. ۱) کړليچ، کړلېچی؛ ۲) گـردنی؛ ۳) کښې، چـې بـوڼ پـرې غـړي؛ ٤) چاښې چې وژغنې پرې غښتلی کېږي.

**گرځول** (garǰawə́l) مص. مت. ۱) حرکت ورکول، چکر ورکول؛ ۲) حقدار ثابتول؛ ۳) بل ته اړول؛ ٤) گرځون کول، قی کول.

**گرځون** (garǰū́n) نر.م. قی، کانگي، باقې.

**گرځېدل** (garǰedə́l) مص. ل. ۱) روانېدل، حرکت کول؛ ۲) سيل کـول؛ ۳) له ژبې اوړېدل؛ ٤) له پرېښول؛ ۵) د سر چورلېدل.

**گرځېدونی** (garǰedúnay) نـر.م. ستنېدونکی، بېرته گرځېدونکی، واپس کېدونکی.

**گرځېنده** (garǰénda) ص. نر.م. و گ. گرځانه.

**گرد** (gard) نر.م. ۱) ټـول، تمام؛ ۲) چاپېره.

**گرد** (gard) نـر.م. ۱) گـرد، دوره؛ ۲) غونډی، گول؛ ۳) چيلم.

**گرداب** (gardā́b) نـر.م. ۱) گرداو، د اوبو چکر، چورلنډی؛ ۲) غولی، خارخوری، ثرخاو.

**گرداړه** (gardā́ṛa) ښځ.م. غونډاره، هغه غونډاری چې کوچنيان پرې لوبې کوي.

**گرداړی** (gardā́ṛay) نر.م. و گ. گرداړه.

**گرداگرد** (gardāgárd) نر.م. ۱) له ټولو څخه، چاپېره، راپند، چاپېره؛ ۲) معمور، ډ ک.

**گردان** (gardán) نر.م. بیا بیا وینه، سبق تکرارونه، مشق و تمرین کول.

**گردانګ** (gardáng) نر.م. پلېتنې، د جولا یوه آله.

**گردانول** (gardānawál) مص. مت. څو ځلي سبق تکرارول، بیا تکرار کول، یادول.

**گردانېدل** (gardānedál) مص.ل. ۱) بیا بیا ویل کېدل، تاوېدل؛ ۲) دویم ځل ویل کېدل.

**گردباد** (gardbád) نر.م. بورېوړکی، دوړ دوړکه، هغه باد چې دوړې او خځلې له ځان سره الوځوي.

**گردسره** (gárdsara) نب. ټول، له څېرمې، بالکل.

**گردچاپېر** (gardčáper) نر.م. تاوراتاو، ګېرچاپېر، چاپېر.

**گردک** (gardák) نر.م. ۱) غونډ منډ، ګردمرد، دایروي شکله؛ ۲) مج. تبر.

**گردکی** (gardakáy) نر.م. ۱) مج. وړوکی تبر، تبرګوټی؛ ۲) غونډمونډ، وړکی.

**گردګاړی** (gardgāṛay) نر.م. وګ. ګرګاړی.

**گردلمی** (gardlámay) نر.م. یو ډول ګردی بوټی دی، چې زېړ ګل کوي.

**گردماچو** (gardmačú) نر.م. مازو، یوه سوربخونه مایع ده چې چینجی د څېړې ونه ژوبلوي او له هغې نه بهررا وځي.

**گردمه** (gardamá) ښځ.م. شپول.

**گردمېز** (gardméz) نر.م. ګردی مېز، مدورمېز.

**گردی مېز** (gardaymée) نر.م. وګ. ګردمېز.

**گردنی** (gardanáy) ښځ.م. ۱) نامزادګي، چغل بازي؛ ۲) له کوژدې نه وروسته د خسر کره د شو ورځو لپاره د زوم دېره کېدنه؛ ۳) د کارتوسو پټۍ، غاړکۍ؛ ٤) په څټ باندې ترپ ور کونه.

**گردو** (gardú) نر.م. د بوټو ایستلو تسکوره.

**گردول** (gardawál) مص. مت. غونډول، ټولول.

**گردومه** (gardūmá) ښځ.م. ګردمه، شپول، دایروي کرښه چې تر سپوږمۍ راچاپېره شوې وي.

**گردون** (gardún) نر.م. ۱) آسمان څرخه، فلک ګرزون؛ ۲) ګرداو، چورلانډس.

**گردونه** (gardūná) ښځ.م. هغه ښځه چې د دوو کسانو پرې دعوا وي او د جګړې د مخنیوي لپاره یې بل د رېمګړی په نکاح واخلي.

**گرده**[1] (gardá) ښځ.م. ۱) غوښتنه، سوال کونه؛ ۲) خام چرس، ګرده؛ ۳) خاکه؛ ٤) ګردی، شپول ۵) یو ډول خمیره ډوډۍ؛ ٦) لاړی، داګه، لوړ؛ ۷) کوتک، همسا.

**گرده**[2] (gurdá) ښځ.م. ۱) پښتورګی، بډوډۍ؛ ۲) مج. حوصله، همت، جرئت.

**گردی** (gardáy) نر.م ۱) مندری، پیشتکی، لنډۍ؛ ۲) ګردی، هاله، شپول؛ ۳) د پټون هډوکی.

**گردۍ** (gardə́y) ښځ.ج. د څرخي ګاډینۍ چې تار زیات نه پرېږدي، چرمکی، بورک.

**گردۍ کنډوله** (gardəykandúla) ښځ.م. زنکي نار، د مولۍ په څیر یو نبات دی.

**گرړ** (garáṛ) ص.نر.م. هغه آس چې څلور واړه پښې او تندی یې سپین وي؛ باښ، سبلمی، سبلکی.

**گرړول** (garṛawál) مص. مت. ۱) رغړول؛ ۲) له یو شي نه په زوره آواز ویستل.

**گرړه** (garáṛa) ښځ.م. یو ډول غرنی نبات دی.

**گرړېدل** (garṛedál) مص.ل. ۱) له یو شي نه په زوره آواز راوتل؛ ۲) رغړېدل.

**گرړۍ** (garṛə́y) ښځ.م. ۱) کند، کنداړی، د ملنګانو جامې؛ ۲) نر.م. چیچکی؛ ۳) یو ډول مرغی ده؛ ٤) غونډمنډ، ګردی.

گرړی (garṛáy) ښځ. م. ۱) وګ. ګرګاړی؛ ۲) یو ښین بوټی دی چې ګردی ګل کوي.

ګرز[۱] (garz) نر. م. ۱) امسا؛ ۲) خاوره، دوړه.

ګرز[۲] (gurz) نر. م. دوولس درځنه.

ګرز[۳] (guraz) نر. م. د اوسپنې یوه درنه آله چې په جنګونو کې کارېده.

ګرزوهلی (garzwahalay) ص. نر. م. سپېره، خېړ، په خاورو او دوړو ککړ.

ګرژول (garažawál) وګ. بګارول.

ګرړل (garaẓál) مص. مت. ۱) ګرول؛ ۲) تراشل، توړل، په نوکانو باندې تورل.

ګرړه (gáraẓa) ښځ. م. ګرړی؛ ۱) خاربښت، کهه، کهښت؛ ۲) نوکاره، شوکاره.

ګرست (grast) نر. م. په بېل یا کوداله باندې ځمکه نرمول یا ګور کونه.

ګرستی (grástay) نر. م. هغه یوم یا بېل چې ځمکه پرې اړول کېږي.

ګرسره (gársara) نب. ببخي له سره، قطعاً، بالکل چورلټ.

ګرکڼه (garkáṇa) ښځ. م. بې آزاره مچۍ چې د ځان لپاره د خاورو کورجوړوي، کولاله مچۍ.

ګرکی (gárkay) نر. م. د مېچنې ګرځولو آواز.

ګرګ (garg) نر. م. ۱) د حیواناتو یوه ناروغي، پم؛ ۲) یو بوټی چې ژېړ واړه ګلونه کوي؛ ۲) هغه چینجي چې د حیوان په ځیګر کې، د ګرګ د بوټي د خوړولو له امله پیدا کېږي.

ګرګابی (gargābáy) ښځ. ج. یو ډول پنې یا موزې.

ګرګاړی (gargā́ṛay) نر. م. هر هغه غونډ شی چې د رغړولو یا تاوولو وړ وي، ګردګاړی.

ګرګاس (gargás) نر. م. ۱) ګرګس، تنتر، ځیګر؛ ۲) مج. د زړه سر؛ ۳) لبوني غنم، یو ډول ګیا ده.

ګرګانی (gargāṇay) نر. م. چم، غونډاري، ګپه.

ګرګټ (gargáṭ) نر. م ۱) وګ. ګرګوټی؛ ۲) د اوښ د پښې هډوکی؛ ۲) د کربوړي په څېر یو رنګ بدلوونکې خزنده.

ګرګټه (garguṭá) ص. ښځ. م. بوډۍ ښځه.

ګرګچی (gargačáy) ښځ. م. ج. د تاک یوه وړه وچه کونده.

ګرګر (gargár) ص. نر. م. کوږ وږ، کوږ کوږ، کوپ کوپ.

ګرګر (gargár) نر. م. ظالم، تېري کوونکی، تیرغمال.

ګرګري (gargarí) ښځ. م. ظلم و تېری، زور زیاتی.

ګرګرام (gargarā́m) نر. م. ادېګدې، زوړ پوړ.

ګرګره[۱] (gargurá) ښځ. د ببرې مېوه.

ګرګره[۲] (gargará) ښځ. م. ۱) تکېدلی متېر اره؛ ۲) شنه تېوخله.

ګرګره[۳] (gırgırá) ښځ. م. ۱) د غنمو او... دلده؛ ۲) نامنظمه شدیاره؛ ۳) وړوکې مېچن.

ګرګ زړی (gargzaṛay) نر. م. تېوقه، کنډوسکی.

ګرګل (gargál) نر. م. خاربښت، پم، کهه.

ګرګله (gargalá) ښځ. م. ګردله، ګردباد.

ګرګنډه (gargánḍa) ښځ. م. د لرګي دړه یا کونده.

ګرګنه (garganá) ښځ. م. د ګرګي حیوان ځیګر.

ګرګو (gargū́) نر. م. ۱) د ښځو یو راز ګڼا؛ ۲) ښځ. م. انګازه، هنګامه؛ ۳) د پسونو یوه ناروغي.

ګرګوښه (gargū́ṣa) ښځ. م. ګورکنې، غسی، ګورلټې، هغه ځناورچې مړي راوباسي.

ګرګه (gárga) ښځ. م. ۱) ګوسه، د ونې ببخ؛ ۲) غټ بش، شاتیر؛ ۳) مج. ص. نر. م. غټ پټ سړی.

ګرګي (gargí) ص. نر. م. ۱) پمن، خاربښتي؛ ۲) پوخ روږدی یا عملي لکه د چرسو، شرابو او... ، کوږ عملي.

**گرګی** (gargáy) ښځ.م. ج. ۱) کوچنۍ ګرګه؛ ۲) یو سپېره بې پانو بوټی.

**گرګی** (gárgay) نر.م. ۱) یو ډول لوبه؛ ۲) غاښور، منداوو؛ ۳) د هډوکو تړل، استخوان بندي.

**گرلاټ** (garláṭ) نر.م. کودنی، کوډره، کودوړی، کودری، د مات خاورین لوښي ټوټه.

**گرلاڅه** (garlā́ca) ښځ.م. ترنګه، ترنګې، د مزرو کوری، غوندی، ګرلڅه، ګرلسه.

**گرلبی** (gárlabay) نر.م. خراشکی، بلغم.

**گرلت** (garlát) نر.م. خربیلی سر، ګنبوخه.

**گرلڅه** (garlacá) ښځ.م. و ګ. ګرلاڅه.

**گرلنډ** (garlánd) ص. نر.م. ۱) غټ، څورب سړی؛ ۲) نر.م. د چورلېدو له امله سرګرځېدنه.

**گرلې** (garalé) ښځ.م. د ډال حلقه یا کړی.

**گرلی** (garláy) ښځ.م. ج. پېتی، پنډ.

**گرم**[1] (grám) نر.م. ملامت، پړ.

**گرم**[2] (gárm) نر.م. ۱) تود؛ ۲) مج. تېز، چټک؛ ۳) مج. مین، عاشق؛ ٤) ص. جذباتي.

**گرم**[3] (garū́m) نر.م. ۱) غم، رنځ، نول؛ ۲) دماغي پرېشاني؛ ۳) د دق مرض؛ ٤) د څینو ونو په ډډ کې غوټه، ګروم، خنډ، رخټ، وزغی.

**گرماګرم** (garmāgárm) ص. نر.م. ج. تېز، توده په توده، ډېر ګرم چې زور او شور په کې وي.

**گرماله** (garmālá) ښځ.م. ختټ موښې، ګلماله، ختماله.

**گرمانه**[1] (gramānā́) ښځ.م. (ج ګرماني) تورغم، ګناهکاره، جرمانه.

**ګ[illegible]مانه**[2] (g[illegible]rmānā́) ښځ.م. ګ[illegible]م دارو، تود شی.

**ګر[illegible]انۍ** (garmā[illegible]) ښځ.م. تو[illegible]ونه، حرماني ګناهکاري.

**گرمتیا**[1] (grámtyā́) ښځ.م. ملامتیا، ګرموالی.

**گرمتیا**[2] (gármtyā́) ښځ.م. تودوخه، ګرموالی.

**گرمټ** (garmáṭ) نر.م. ۱) نېزه، د غشي څوکه؛ ۲) هغه آله چې یو سر یې دروند وي او فرش یا ځمکه پرې د کېندلو لپاره ټک وهلی شي، درمټ؛ ۲) د ترکانۍ مخصوصه برمه.

**گرمسیر** (garmsér) نر.م. ۱) توده سیمه؛ ۲) هغه ښوونځي چې په ګرمۍ کې رخصت وي.

**گرمکه** (garmáka) ښځ.م. ګرم دانه.

**گرمل** (guramál) مص. مت. و ګ. ګربل.

**گرملی** (gurmálay) نر.م. کوت، کُنجلک، کړت، ګونجی، سرسري او ګونجې ګنډل شوې.

**گرمناک** (garmnā́k) ص. نر.م. تاوجن، تودوخه ورکوونکی، ګرموال.

**گرمنه** (gurmána) نر.م. و ګ. ګرملی.

**گرموالی** (garmwā́lay) نر.م. تودوالی، تودوخه.

**گرمول**[1] (gramawə́l) مص. مت. ملامته کول، پړ کول، پړ ثابتول.

**گرمول**[2] (garmawə́l) مص. مت. ۱) تودول؛ ۲) تېزول، شوق ورکول؛ ۳) په غوسه کول.

**گرمه** (garmá) ص. ښځ.م. ۱) هغه ښځینه څاروی چې نر څاروی غواړي؛ ۲) نب. هغه مېوه چې ژر رسېږي؛ ۲) یو ډول ختکی، ګرمک.

**گرمه ګورمه** (garmagórma) ص. ښځ.م. ګنه ګونه.

**گرمي** (garmí) ښځ.م. ۱) تودوالی، تودوخه؛ ۲) غوسه، قهر؛ ۳) سوزاک، آتشک.

**گرمېدل**[1] (gramedə́l) مص. ل. ملامت کېدل.

**گرمېدل**[2] (garmedə́l) مص. ل. ۱) تودېدل؛ ۲) شوق م[illegible]؛ ۳) غوسه ک[illegible]ل، [illegible]هربدل.

**گرمېل** (1[illegible] نر.م. څیرک[illegible]، حامې.

**گرناټی** (garnāṭə́y) ښځ.م. ج. د ک[illegible] وچنیانو یوه لوبه ده.

گرنټه (garanṭá) ښځ.م. هغه ...
لپاره کرل کېږي.
گرنج (granj) نر.م. ۱) گرنج، دېټ ...
۲) یو ډول پلاو.
گرنجاری (granjáray) نر.م. گرنج ...
گرنجانی (granjānáy) نر.م. جر ...
گرنځ (granź) نر.م. په هوا کې د یو ...
گرند (grand) نر.م. ۱) یوه غرنۍ ...
۲) جغل، زنگال؛ ۳) دهندوانو ...
گرندوکی (garandúkay) نر.م. ...
کولو آله.
گرنده (garandá) ښځ.م. مرغۍ ...
گرندی[1] (gránday) نر.م. ۱) ...
روغه، سوله؛ ۲) د صحاف چوړ ...
گرندی[2] (gıranday) نر.م. تو ...
سامان بوجگی.
گرندی[3] (garandáy) ص. نر.م. ...
گرنډه (granḍá) ښځ.م. یوه هندوست ...
اچار ورنه جوړېږي.
گرنړی (graṇáy) ښځ.م. د کوچنیانو ...
گرو (graw) نر.م. ۱) گانه، گېڼه؛ ۲) ...
۳) تړ، تړون، ناغه.
گروبله (grúbla) ښځ.م. گروبلی، بلغ ...
گروبی (grubáy) نر.م. و گ. گروربی ...
گروپ (grūp) نر.م. ۱) ټولی، ډله؛ ۲ ...
گروپی (grūpay) نر.م. و گ. بگړی ...
گروت (garūt) نر.م. ۱) لاس ورکول؛ ...
کوده، قوده.
گروټی (grūṭay) نر.م. پتیره ډوډۍ.
گروڅکی (grūckay) نر.م. یو ډول دانې ...
تړې جوړېږي.

**گرنټه** (garanṭa) ښځ.م. هغه بوټی چې د ښکلا لپاره کرل کېږي.

**گرنج** (granj) نر.م. ۱) گړنج، د پټیلو او لوښو آواز؛ ۲) یو ډول پلاو.

**گرنجاری** (granjāray) نر.م. گرنگهار، کرنگار.

**گرنجانی** (granjānáy) نر.م. جرس، گینگری.

**گرنځ** (granź) نر.م. په هوا کې د یو شي د تېرېدو غږ.

**گرند** (grand) نر.م. ۱) یوه غرنۍ اغزنه ونه ده؛ ۲) جغل، زنگال؛ ۳) د هندوانو مذهبي کتاب.

**گرندوکی** (garandūkay) نر.م. د آسونو د خرخره کولو آله.

**گرنده** (garandá) ښځ.م. مرغړی، غدود، مروړی.

**گرندی**(۱) (gránday) نر.م. ۱) بخښنه، خلاصی، روغه، سوله؛ ۲) د صحاف چوړکی.

**گرندی**(۲) (gıranday) نر.م. توبره، د ترکاڼ د سامان بوجگی.

**گرندی**(۳) (garanday) ص. نر.م. گړندی، تېز.

**گرنډه** (granḍá) ښځ.م. یوه هندوستانۍ مېوه چې اچار ورنه جوړېږي.

**گرنۍ** (granáy) ښځ.م. د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**گرو** (graw) نر.م. ۱) گانه، گېڼه؛ ۲) کفالت، قید؛ ۳) تړ، تړون، ناغه.

**گروبله** (grúbla) ښځ.م. گروبلی، بلغم، خراشکی.

**گروبی** (grubáy) نر.م. و.گ. گروړبی.

**گروپ** (grūp) نر.م. ۱) تولی، ډله؛ ۲) غونډه.

**گروپی** (grūpay) نر.م. و.گ. بگړی ۲).

**گروت** (garūt) نر.م. ۱) لاس ور کول؛ ۲) موتی، کوده، قوده.

**گروټی** (grūṭay) نر.م. پټیره ډوډۍ.

**گروڅکی** (grūckay) نر.م. یو ډول دانې چې مریا ترې جوړېږي.

**گروړبی** (garūṛbay) نر.م. ۱) د سینې درد؛ ۲) بلغم، کروړبی، خراشکی، گروبی.

**گروزی** (grūzay) نر.م. و.گ. کړبوزی.

**گروس** (grūs) نر.م. ځمکنی توت.

**گروشېیل** (grušeyál) مص.مت. و.گ. بگارول.

**گرول** (garawál) مص.مت. ۱) نوکاري کول؛ ۲) پوستکی پرې کول، تورول؛ ۳) حاصلول.

**گرولی** (grūláy) نر.م. بلغم، خراشکی، کروړبی.

**گروم** (grūm) نر.م. ۱) خپگان، خواشیني، د زړه غوټه؛ ۲) خنډ، دونو په تنه کې غوټه.

**گرومجن** (grūmján) ص.نر.م. غمگین، پرېشان.

**گروونی** (garawūnay) نر.م. نوسی، یو سیخ دی چې له تناره نه وریاندې ډوډۍ راباسي.

**گروه**(۱) (gráwa) ښځ.م. ۱) د اوږې او څټ تر منځ هډوکی؛ ۲) د کمیس کالر؛ ۲) تنۍ، بتمن، گلمبخۍ، غینډۍ.

**گروه**(۲) (groh) نر.م ۱) دین، مذهب؛ ۲) تولی، ډله؛ ۳) قوم.

**گروه توپیر** (grohtawpír) نر.م. د عقایدو اختلاف، د عقایدو توپیر.

**گروهن** (grohán) نر.م. ۱) راغب؛ ۲) مهربان؛ ۳) له ظلم نه ترهه لرونکی.

**گروهنه** (grohána) ښځ.م. ۱) مهرباني؛ ۲) مینه؛ ۳) وېرېدنه؛ ٤) لورنه، پېرزوینه.

**گروهوڅی** (grohūcay) نر.م. گراڅه، لنده.

**گروهول** (grohawál) مص.مت ۱) پام راگرځول؛ ۲) له ظلم نه وېرول؛ ۳) عقیدتمن کول.

**گروهه** (gróha) ښځ.م. گروه، امنا، باور، عقیده، یقین.

**گروهه او پوهه** (gróhaawpóha) ښځ.م. عقیده وغلم، علم وعقیده.

گروهېدل (grohedә́l) مص. ل ۱) متوجه کېدل؛ ۲) وېرېدل؛ ۳) عقیدتمن کېدل.
گروهیز (grohíz) نر.م. عقیدوي، اعتقادي، عقیده یي، ایماني.
گروې (gráwe) ښځ.ج. گرۍ، د اوړي او ځینې ترمنځ هډوکی.
گروی (garwáy) نر.م. و گ. زگېروی.
گروېږل (grawezә́l) مص. مت. پوښتنه کول، لټون کول، غوښتنه کول.
گروېږن (grawezә́n) نب. د گوډي او ژي لپاره د حلال شوي مال د پوستکي ایستلو طریقه.
گروېږونی (grawezū́nay) نر. م. پلټونکی.
گرویلیک (grawilík) نر.م. گانه لیک، گروي خط، گانه خط.
گره (gará) ښځ.م. په خاورو کې د ساتل شویو گنو ډېری.
گرهار (garahā́r) نر.م. گر، د جامو شلېدلو آواز.
گره بره (garabára) ښځ.م. نانډوله، سرسري، لند تنگ، سطحي.
گرهچ (garháč) نر.م. ډوغل، کنده، گرهوځ.
گرهو (gârhū́) ص. نب. زړه ماتوونکې خبرې.
گرئ (garáy) نر.م ۱) درمندگی؛ ۲) ص. نر.م. دارو، هغه څوک چې بې ډوله او راوتلي غابښونه ولري.
گري (garí) نر.ج. د شولو هغه دانې چې په بوټي کې نیمې پخې شوې وي.
گرۍ (gray) ښځ. م. د دروازې چوڼ یا لخک.
گریب (grib) نر.م. د اوبو کوب یا بوکان، کویب.
گریټ (griṭ) نر.م. هغه لویه ډوډۍ چې گوړه هم په کې اچول شوې وي.
گرېټۍ (greṭáy) ښځ.م. د گېلو مانو خبرې.
گرېدل (garedә́l) مص. ل. ۱) کهه کېدل، خارښتېدل ۲) رژېدل، گونجې کېدل؛ ۳) پوستکی لېرې کېدل؛ ٤) مج. حاصلېدل، یو شی بودېدل.
گریس (gris) نر.م. یو ډول سرېښناکه غوړه ماده ده.
گرېشک (grešk) نر.م. غته گوته، کته گوته.
گرېگرکی (gregarkay) نر.م. گرېگرۍ، ږلۍ، له باران سره د واورې نرۍ نرۍ دانې ورېدنه.
گرېله (grelá) ښځ.م. توشکه، تولایي، نالۍ.
گرېن (gren) نر.م. تخم، غله، دانه، د یوې نیمې رتۍ وزن.
گرین[1] (grin) نر.م. سینه.
گرین[2] (garín) نر.م. مزی یا تار چې دوه یا درې واره غښتل شوی یا تاو شوی وي.
گرینډۍ (grinḍáy) ښځ. م.ج. کجاوه، له لښتو نه جوړه شوې لویه کجاوه یا کارۍ.
گرېو (grew) نر.م. گروه، گانه، رهن.
گرېوان (grewā́n) نر.م. گرېوه، گېړ، د کمیس هغه برخه چې په سینه پرته وي.
گریولی (gríwlay) نر.م. خراشکی، بلغم.
گریوه (griwá) ښځ. م. د تنۍ سوری.
گرېوه (garewá) ښځ.م. ورو کی غر، غرگوټی.
گرېیل (gareyā́l) مص. مت. و گ. گرول.
گړ (gaṛ) نر.م. ۱) کلا، قلا؛ ۲) دلاحقې په توگه د ظرفیت مانا ورکوي، د اوسېدو ځای؛ ۳) د ښځو د ویښتانو زرورق؛ ٤) لفظ، خبره، وینا، سپن، مورفیم، دژبې ترټولو کوچنی مانیز یوون (واحد).
گړاواز (gaṛāwā́z) نر.م. مورفو فونیم، صوتي اریکه، صوتي رابطه، هغه اواز، چې د یوه گړ د بېلا بېلو ځېلونو (بلگړونو) په لړ کې راځي
گړاواز پوهنه (gaṛāwā́zpohána) ښځ.م. د ژبپوهنې هغه څانگه چې گړاوازونه څېړي.
گړاچي (gṛā́čáy) ص. نر.م. و گ. گړچند.

**گړاکو** (gṛākū) نر.م. ۱) د تماکو او زړي گوډي مرکب چې په چلم کې ځکل کېږي؛ ۲) همدغه چلم.

**گړب** (gṛab) نر.م ۱) گړپ، تېزې او توندې خبرې؛ ۲) د دوو شيانو سره خپلو کې د لگېدو آواز؛ ۳) د موږکانو نيولو پنجره؛ ٤) غټه سوره.

**گړبا** (gṛabā́) ښځ.م. ۱) توندې خبرې؛ ۲) د دروازې يا نورو شيانو سره د لگېدو آواز.

**گړباده** (garbā́dá) ښځ.م. برېوکی، د پېريانو ډولی.

**گړباوو** (gṛabā́wū) ص. نب. کړتن، ډېرې خبرې کوونکی.

**گړباوه** (gṛabā́wá) ښځ.م. ۱) د اوبو د وتو ځای؛ ۲) کانيزه ځمکه.

**گړبړ** (gaṛbáṛ) نر.م ۱) د گېډې د قړېدو آواز، قړقړ؛ ۲) مج. بې نظمي، گډوډي؛ ۳) گړبېدنه؛ ٤) په اراده يا بيان کې توپير راتلنه؛ ٥) وارخطايي.

**گړب گړوب** (gṛabgṛúb) نر.م. ۱) خبرې اترې؛ ۲) د دروازې د خلاصېدو او پورې کېدو آواز.

**گړبن** (gṛabán) ص. نر.م. گړبند، بې ځايه او چټې خبرې کوونکی، گړبو، سرماغزن.

**گړبند**(۱) (gaṛaband) ص.نر.م. گړبن، قړتو، ترتو.

**گړبند**(۲) (gṛaband) ص. نر.م. ۱) زوړ، کم زوری، ضعيف، بوډا؛ ۲) ډېر استعمال شوی.

**گړبنده** (gṛabanáda) ښځ.م. ۱) په غره کې لوی طبيعي غار؛ ۲) د غټو کانو او تيږو ځای.

**گړبنی** (gṛabnáy) ښځ.م. کانيزه ځمکه.

**گړبو** (gṛabū́) ص. نب. و.گ. گړباوو.

**گړبوزه** (gaṛbū́za) نر.م. ړچېدنه، ړچ، گرگوزه.

**گړبوزی** (gaṛbū́záy) نر.م. ۱) غزی؛ ۲) بالښت؛ ۳) گورت، د دوگوتو ترمنځ فاصله.

**گړبول** (gṛahawál) مص. مت. ۱) له دروازې نه آواز ويستل؛ ۲) له يو چا نه چټې خبرې ويستل؛ ۳) په غوسه کول؛ ٤) زړول، ډېر استعمالول.

**گړبهار** (gṛabahā́r) ص. نر.م. گړبار، د دوو شيانو سره خپلو کې د لگېدلو آواز.

**گړبېدل** (gṛabedál) مص. ل. ۱) له يو شي نه آواز ختل؛ ۲) ډېر استعمالېدل؛ ۳) چټيات ويل ٤) غوسه کېدل؛ ٥) ځړيکې وهل.

**گړبېزن** (gaṛbezán) ص.نر.م. کړبېزن، هغه سړی چې پوزه يې تل له گند نه ډکه وي، خيرن، خچن.

**گړپوهنيز** (gaṛpohaníz) نر.م. مورفولوجيکي، گړپوهيز.

**گړپوهه** (gaṛpóhá) ښځ.م. گړپوهنه، مورفيم پوهنه، واژه شناسي.

**گړچ** (gṛač) نر.م. ۱) تېزې او توندې خبرې؛ ۲) په لوښي کې د ننه د يو شي د ړچولو آواز.

**گړچاوو** (gṛačā́wū) ص.نر.م. ۱) هغه سړی چې زوم د خسر کور ته بيايي؛ ۲) توندې خبرې کوونکی.

**گړچند** (gṛačánd) نر.م. ړچن، ړق، هغه شی چې د گړچ گړچ آواز کوي.

**گړچول** (gṛačawál) مص. مت. د خوځولو له امله د يو شي نه آواز پيدا کول.

**گړچه** (gṛáča) ښځ.م. د خولې بحث.

**گړچهار** (gṛačahā́r) نر.م. د گړچ گړچ آواز.

**گړچېدل** (gṛačedál) مص. ل. د خوځېدو په وجه له دروازې يا بل شي نه آواز پيدا کېدل.

**گړد**(۱) (gaṛd) نر.م. دوره، گرد.

**گړد**(۲) (gaṛd) ص. نر.م. گردی سړی.

**گړداگړد** (gaṛdāgáṛd) ص. نر.م. گرداگرد، شا وخوا، چپ چاپېر.

**گړدان** (gaṛdā́n) نر.م. ۱) د غره لمن؛ ۲) د بتيارانو لوټکی؛ ۳) و.گ. گردان.

**ګړدانول** (gaṛdānawә́l) مص. مت. وګ. ګردانول

**ګړداو** (gaṛdә́w) نر.م. ۱) لوی سېلاب؛ ۲) او ګرځنی ګرداو.

**ګړدګاډی** (gaṛdgā́ḍay) نر.م. هر هغه غونډه شی چې غړولی یا تاوولی شي.

**ګړدود** (gaṛdód) نر.م. ویناد ود، لهجه، ډیالیکټ.

**ګړدوداطلس** (gaṛdōdatlás) نر.م. ګړدودي اطلس، لهجوي اطلس.

**ګړدودپوهنه** (gaṛdodpohána) ښځ.م. ګړدود پوهه، د ګړدود اړوند علم، لهجه پېژندنه.

**ګړدودي** (gaṛdodí) ښځ.م. د ګړدود اړوند، د لهجې اړوند.

**ګړدودي ځمکپوهنه** (gaṛdodiǰmakpohána) ښځ.م. لهجوي جغرافیه، لهجوي جغرافیا.

**ګړدوکی** (gaṛdū́kay) نر.م. د خیمې اړم، ګرده تخته چې په خیمه کې کارېږي.

**ګړدی** (gaṛdә́y) ص. ښځ.م. ۱) غونډه، حلقه، ګیر چاپېره، تاوراتاو؛ ۲) ښځ.م. څرخي چکر.

**ګړدی** (gaṛdáy) نر.م. ۱) تکی، چرمکی؛ ۲) ص. مندری، چیتکی، لنډی.

**ګړز** (gṛaz) نر.م. تېز او دروند آواز.

**ګړزا** (gṛazā́) ښځ.م. ګړزهار، ګړزار، ګړزګړوز، د ډزو پرله پسې آواز.

**ګړزول** (gṛәzawә́l) مص. مت. ۱) له یو شي نه د ګړز ګړز آواز ویستل؛ ۲) ډزول، ډزې کول.

**ګړزېدل** (gṛazedә́l) مص. ل. ګړزګړوز کېدل، په پرله پسې توګه ډزې کېدل.

**ګړشپه** (gaṛšū́pa) ښځ.م. وګ. ګړشوپ.

**ګړګاډېر** (gaṛgāḍér) ص. نر.م. ګرګاډېره، هغه څه چې بل شی په کې ګډ شوی وي، ګاډېره.

**ګړګړ** (gaṛgә́ṛ) نر.م. د ګېډې یا د اوبو آواز.

**ګړګړو** (gaṛguṛū́) نر.م. تورتورو، ستونی، حلقوم، غرې، غروی، د مرۍ سوری، حلق.

**ګړګړی** (gaṛgaṛáy) نر.م. چورلندی، څرخ.

**ګړګوتی** (gaṛgū́tay) نر.ج. ګونځې، ګونجې، ګالګوتي، هغه ویښته چې تاوراتاو وي.

**ګړګور** (gaṛgū́r) نر.م. د آسمان ګړاری، ګړار، تنا.

**ګړګوزه** (gaṛgóza) ښځ.م. ګړیوزه، د تبې لړزه.

**ګړګې** (gaṛgә́y) ښځ.م. دایره، ګرد، ګردی.

**ګړماچی** (gaṛmāčáy) نر.م. وګ. ګړونج.

**ګړماګړ** (gáṛmāgáṛ) نر.م. ډېر شور، شور ځوږ.

**ګړماله** (gaṛmālá) ښځ.م. وګ. ګرماله.

**ګړمانج** (gaṛmāng) نر.م. مازو، ګړوانجو، د ښېرۍ د ونې غوټه.

**ګړمبهار** (gṛambahā́r) نر.م. ګړمبا، د توپ او بم د چاودنې پرله پسې آوازونه.

**ګړمچی** (gaṛamčáy) نر.م. وګ. ګړونج.

**ګړمن** (gaṛmán) ص. نر.م. شپه روني، بې خوبه.

**ګړن** (gaṛán) ص. نر.م. ۱) شپه روني؛ ۲) ستړی.

**ګړنپوهنه** (gṛәnpohána) ښځ.م. غونډ پوهه، هغه څانګه چې له ګړنو څخه ګړېږي، اصطلاح پېژندنه، فقره پېژندنه.

**ګړنج** (gṛanǰ) نر.م. شرنګ، شرنګ، د تورو جنګېدو آواز.

**ګړنجانی** (gṛanjānáy) نر.م. ګینګړی، جرس، ګړنجوونی.

**ګړنجول** (gṛanjawә́l) مص. مت. له تورو نه شرنګا ویستل، شرنګول.

**ګړنجار** (gṛanjahā́r) نر.م. د جرس د تنګېدو پرله پسې آواز.

**ګړنجېدل** (gṛanjedә́l) مص. ل. د تورو جنګېدو له امله نرۍ شرنګ وتل، شرنګېدل، کړنګېدل.

**ګړنجي کټار** (gṛanjaykatā́r) نر.م. د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**ګړند** (gaṛánd) ص. نر.م. ۱) خوله‌ور، ژبور؛ ۲) مج. چالاک سړی؛ ۳) یوه اغزنه غرنۍ ونه ده.

**ګړندر** (gṛandár) نر.م. کرندر، شمېر، عدد.

**ګړندوالی** (gaṛandwā́lay) نر.م. خوله‌ورتوب، ژبورتوب، په خبرو کې تېزوالی.

**ګړندی** (g ṛandáy) ص. نر.م. ۱) چست و چالاک، تکړه، چابک؛ ۲) مج. رسېدلی مرشد.

**ګړندۍ** (gaṛandə́y) ښځ.م.ج. چرموښکی، چخوړکی، د کورونو یوه خزنده ده.

**ګړندی والی** (g ṛandaywā́lay) نر.م. چستي، چالاکي، تېزي او تندي.

**ګړنګ**(۱) (gaṛáng) نر.م. ۱) لویه کنده؛ ۲) په غره کې لویه کنده، د سیند لوی ژور ځای.

**ګړنګ**(۲) (gṛang) نر.م. ۱) د پزې تېنګه مایع، کړمېزه، ګړینګ؛ ۲) مج. د سترګو اوبه.

**ګړنګن** (gṛangán) ص. نر.م. کړمېزن، ګړنګور، ګړنګوش، هغه څوک چې پوزه یې تل بهېږي.

**ګړنګین** (gaṛangín) ص. نر.م. لوړ، هسک.

**ګړنه** (gṛána) ښځ.م. هغه لغوي ګروپ چې یوه درېمګړې مانا ښندي، اصطلاح، محاوره.

**ګړنی** (gṛanáy) نر.م. ګړهاري، ویناییز، شفاهي.

**ګړنی ادب** (gṛanayadáb) نر.م. ګړهاري یا ویناییز ادب، شفاهي ادب.

**ګړنیز** (gṛaníz) نر.م. د ګړنې (اصطلاح، محاورې) اړوند، اصطلاحي، محاوروي.

**ګړو** (gaṛū́) نر.م. ګړاکو، چلم، چېلم.

**ګړوانجو** (gaṛwānjū́) نر.م.و.ګ. ګړمانج.

**ګړواز** (gaṛwā́z) ص. نر.م. ۱) ارت، وېر، پراخ؛ ۲) سرلوڅی، سرخلاصی.

**ګړوب** (guṛū́b) نر.م ۱) ګړب، په اوبو کې د یو شي د رالوېدو آواز؛ ۲) نروبه خته او نور شیان.

**ګړوبر** (gaṛubár) نر.م. ګړه‌بړه، خبرې اترې کونه.

**ګړوبن** (gaṛobán) ص. نر.م. بلغمي؛ هغه څوک چې په سینه یې بلغم پراته وي.

**ګړوبول** (gṛubawə́l) مص. مت. ۱) په یو ځل ورانول؛ ۲) ښورول، خوځول، ښنډول.

**ګړوبی**(۱) (guṛubáy) نر.م. ۱) د ګوړې شربت؛ ۲) ډېر خوږ شی.

**ګړوبی**(۲) (grūbáy) نر.م. د سینې بلغم یا خراشکی.

**ګړوبی**(۳) (gaṛubáy) نر.م. پس آو، هغه اوبه چې په ویاله کې تر تړلو وروسته بهاندې وي.

**ګړوبېدل** (gṛubedə́l) مص. ل. ښورېدل، او په یو ځل ورانېدل.

**ګړوځه** (gaṛū́ja) ښځ.م. بې پیو او وچه غولانځه.

**ګړول** (gaṛawə́l) مص.مت. په خبرو راوستل، له چا نه خبرې راویستل.

**ګړونج** (gaṛwánj) نر.م. ګړونچی، ګروچی، ګړماچې د منګي اینبودلو لپاره د لرګي کټکی.

**ګړونګه** (gaṛwánga) ښځ.م. جروبی.

**ګړوۍ** (gaṛwə́y) ښځ.م.ج. جیسرۍ، کوزنۍ، کوزه‌ګۍ، هغه لوښی چې لاستی لري.

**ګړوېزونه** (gaṛwezū́na) ګړ. ګړدودي وېیونه، واژهای ګویشي.

**ګړهار** (gaṛahā́r) نر.م.ج. ګړېړ، ګړوبړ، خبرې اترې، ګپ شپ.

**ګړهاري** (gaṛhārí) ښځ.م. ویناییز، ګړنی، شفاهي، محاوروي.

**ګړه بنده** (gaṛabánda) ښځ.م. په غره کې لویه سمڅه.

**ګړهل** (gaṛhə́l) نر.م. ۱) یو بوټی چې ښایسته ګل نیسي؛ ۲) ډول، بالتی، متکی.

**ګړی** (garáy) نر.م. ۱) منګی؛ ۲) برج، شینګړی، اتاری، بورجل.

**ګړۍ** (garáy) ښځ.م.ج. ۱) ګښتهه، ساعت؛ ۲) په سیند کې ډېر ژور ځای؛ ۳) زیمناک ځای.

**ګړیال** (garyā́l) نر.م. زنګ لرونکې دېوالي ګړۍ.

**ګړیال برج** (garyālbráj) ص.نر.م. ساعت واله برج، ګړۍ واله برج، هغه برج چې ساعت پکې ټینګ شوی وي.

**ګړیالی** (garyā́lay) نر.م. ساعت ښیونکی، هغه سړی چې د ساعت ښودلو وظیفه لري.

**ګړۍ بند** (garáybánd) نر.م. دګړۍ بند یا تسمه، د ګړۍ زنځیر.

**ګړیچ** (grič) نر.م. سخته لاره، داسې لاره چې تګ راتګ پرې ګران وي.

**ګړیچۍ** (garičáy) ښځ.م. غوچاړی، کوغالی، په ځمکه کې د نیالګیو کینولو لپاره وره کنده.

**ګړېدل** (garedál) مص.ل. ۱) خبرې کول، ګړه بړه کول؛ ۲) ګرړېدل، کرړېدل.

**ګړیز** (garíz) نر.م. د ګړ اړوند، د مورفیم اړوند، مورفیمیک.

**ګړۍ ساز** (garaysā́z) ص.نر.م. ګړۍ والا، ساعت ساز، ګړۍ جوړوونکی.

**ګړۍ سازي** (garaysāzí) ښځ.م. د ساعت جوړونې کارخونه، ساعت جوړونه، ګړۍ رغېدنګځای.

**ګړۍ ستن** (garaystán) ښځ.م. د ساعت ستن، عقربک.

**ګړیستنه** (garistána) ښځ.م. ببلنګ، آرپوهه، اشتقاق و تصریف، فقه اللغة.

**ګړۍ ګر** (garaygár) ص.نر.م. ګړۍ ساز، ساعت ساز، ساعت جوړوونکی.

**ګړېګینه** (garegína) ښځ.م. د لم جزغالی.

**ګړېل** (garayə́l) مص.مت. د دېواله ښخ سپړل د خوځولو لپاره.

**ګړی ماتی** (garaymā́tay) نر.م. دکوچنیانو یوه لوبه.

**ګړینګ** (gring) نر.م. و.ګ. ګرنګ[۲].

**ګړینګی** (gringáy) نر.م. جرس، وړوکی ګونګرو.

**ګړي وال** (gariwā́l) ص.نر.م. هغه سړی چې په کتهوو کې مستې د کلیو نه بازار ته د خرڅولو لپاره راوړي.

**ګړۍ والا** (garaywālā́) ص.نب. ساعت پلورونکی.

**ګړۍ والا** (garaywālā́) ص.نر.م. ۱) منګی خرڅوونکی؛ ۲) مج. کلال.

**ګز** (gaz) نر.م. ۱) د طول د اندازه کولو یو واحد دی؛ ۲) دټوپک سیخ؛ ۳) و.ګ. غز؛ ٤) د لرګي یوه آله چې د اوړو پېړه پرې د تبنۍ پاسه اوارېږي؛ ٥) یو ډول غشی دی؛ ٦) دام. لومه.

**ګزابی** (gazābáy) ص.ښځ.م. بې عقله، لوړه دنګه، کم عقله او کچه ښځه.

**ګزار** (guzā́r) نر.م. وهل، وار، ګوزار، ډب، درب.

**ګزارش** (guzārə́š) نر.م. ۱) عرض؛ ۲) بیان.

**ګزارل** (guzārə́l) مص.مت. ۱) ګوزارول، غوزارول؛ ۲) ادا کول، ترسره کول.

**ګزارول** (guzārawə́l) مص.مت. ۱) ګوزارول، غوزارول؛ ۲) ځملول، په ځمکه راویشتل.

**ګزاره** (guzārá) ښځ.م. ګوزاره؛ ۱) ګزران، وخت اړونه؛ ۳) مج. زغم، حوصله.

**ګزاري** (gazā́n) نر.ج ۱) دخولې نسوار؛ ۲) ګیزاري؛ د غنمو میده شوي وړي.

**ګزارېدل** (guzāredə́l) مص.ل. ګوزارېدل، غوزارېدل پرېوتل، ارتاوېدل.

**گزانه** (gazānā́) ښځ.م. په گز، د گز په حساب.

**گزبره** (gazbára) ښځ.م. اعلی ورښمين قناويز.

**گزبوتي** (gazbū́ṭi) نر.ج. دستک، لاړي.

**گزک** (gazák) نر.م. ۱) د زخم پارسوب، د زخم اوبه پتونه؛ ۲) ص. پرسېدلی، نمجن، التهاب.

**گزک بوټی** (gazakbū́ṭay) نر.م. د بارتنگو بوټی.

**گزکه** (gazáka) ښځ.م. کوړکی، لومه، پرکه، د وړو مرغيو نيولو لپاره پړکه.

**گزگومبت** (gazgombát) ص. نر.م. گډوډ، وران، ويجاړ.

**گزمه** (gazmá) ښځ.م. (ج. گزمې) د شپې گرځېدنه، پيره دار.

**گزول** (gazawál) مص.مت. ۱) گز کول؛ ۲) اندازه لگول؛ ۳) مج. غځول، خورول، اوږدول.

**گژدنه** (gaždána) ښځ.م. تنفس، سا اخيستنه.

**گژوژ** (gažwáž) ص. نر.م. گډوډ، کوږوږ.

**گژې** (gáže) ص.ج. کاږه، په ترخ، په ډډه.

**گژی** (gažáy) ص. نر.م. ۱) جوتي غويی چې د قولبې يا گاڼي لپاره تيار شي؛ ۲) بلد، رضا.

**گړ** (gaẓ) ص.نر.م ۱) گړويښتی، د پاخه عمرخاوند؛ ۲) نيمه پخه شوې مېوه؛ ۳) يو ډول مرز؛ ٤) برگ، ابلق؛ ٦) مج. دوه مخی، منافق.

**گړويښتی** (gaẓwiṣtáy) ص. نر.م. هغه څوک چې نيم ويښته يې تور او نيم سپين وي.

**گړويښتي** (gaẓwiṣtí) ص.نر.م: کره توب، د پاخه عمرخاوند توب.

**گړهار** (gaẓahā́r) نر.م. گړکی، د کلکو شيانو يو بل سره دلگېدو آواز.

**گړی** (gaẓáy) ص. نب. د نهيلی او مايوسی په حالت کې کاږه کاږه کتل.

**گس** (gas) ص. نر.م. کيڼ، چپ، گڅ.

**گستاخ** (gustā́x) ص. نر.م. ناړامه، بې ادبه، بې شرمه، چاودينک، سپين سترگی، بې حيا.

**گستره** (gastára) ښځ.م. غوڅکی، سخوندره، هغه خوسی چې پوره کېدو ته نېږدې وي.

**گسکه** (gaská) ښځ.م. کتمل، منگوره، خسک.

**گسه** (gasá) ښځ.م. ۱) تپله، ډيچکه، ديکه، تپل؛ ۲) نقصان ورکونه؛ ۳) هغه آله چې اوږد لاستی لري او گوره پرې پخېږي.

**گسيا** (gasyā́) ص. ښځ.م. ۱) سوده، خالص؛ ۲) راکښلی شوی؛ ۳) سره نښتی، ورپوري.

**گشت** (gašt) نر.م ۱) چکر، دور؛ ۳) پېره، څوکی؛ ۳) سيل، گرځېدنه.

**گشتی** (gaštáy) ص. ښځ.م. ۱) شليته؛ ۲) مج. متيزه؛ ۳) آواره گرده.

**گښت** (gaṣt) نر.م. ۱) عمل، استعمال؛ ۲) سيل، دور، دوران.

**گفت** (guft) نر.م. ۱) خبره، وينا؛ ۲) مج. ازار، ښېرا، گف.

**گک** (gak) نر.م. د تصغير علامه، لکه سترگک.

**گکړی** (gakẓáy) نر.م. جزغالي، کښکری، ززغاله، بوگړی، سره کړې وازده.

**گگ** (gag) ص. نر.م. ۱) د سرو مچيو غاله؛ ۲) مج. د خټې غتوالی؛ ۳) څپياکه؛ ٤) ډډ، دانچه.

**گگر** (gagár) نر.م. ۱) آهنگر؛ ۲) مضبوط، تکړه.

**گگروزه** (gagrū́za) ښځ.م. ۱) رچ، رپ، رپی؛ ۲) د تبې لړزه.

**گگره**(۱) (gagára) ښځ.م. جغل، کانيزه شگه، هغه شگه چې واړه واړه کاڼي په کې وي.

**گگره**(۲) (gágra) ښځ.م. گاگره، سره نښتې تيږې.

**گگره**(۳) (gagrá) ښځ.م. ۱) هغه اوږد کميس چې تنتر يې واز وي؛ ۲) تنتر، سينه.

گگری (gagráy) نر.م. غوز، اکوړ، چارمغز.
گګړ (gagúṛ) ص. نر.م. ګاګړ، زوړ، بوډا، بوډغ.
ګګړوزه (gagṛúza) ښځ.م. ګړبوزه، ګکروځه.
ګګږی (gagǵáy) نر.م. و ګ. ګکړی.
ګګو (gagú) نر.م. روی، باګو، بګاولی، شیشکه.
ګګۍ (gagáy) ښځ.م. ځلۍ، سنۍ، سوتلۍ.
ګل(۱) (gal) نر.م. غټه غټه ډلۍ، هغه ډلۍ چې غټې غټې دانې ولري.
ګل(۲) (gwal) نر.م. ۱) جنډۍ، کوګۍ، سپېرلې شوې غوټۍ؛ ۲) په بدن کې دداغ نښه ۳) خندق.
ګلاب (gwaláb) نر.م. ګل ګلاب، یو ډول ګل دی.
ګلابتون (gwalabatún) نر.م.ج. زرتار، زرتاری.
ګلاب جامن (gwalābjáman) ص.نر.م.ج. یو ډول غوړنډۍ غونډۍ متابیي.
ګلابوماتابو (gwalābúmātābú) نر.ج. د کوچنیانو یو ډول لوبه، میرغالی، میرغواله.
ګلابي (gwalābí) ص. نر.م. ۱) نایي، ډم، دلاک، سلماني؛ ۲) ګلاب رنګی، ګلاب ته ورته.
ګلاټه (gulāṭa) ښځ.م. و ګ. ګلاله.
ګلارګین (gulārgín) ص. نر.م. سخت، درشت.
ګلاله (gulālá) ښځ.م. ګلالی، کوتالی، ګلاټه، پخه شوې سره ببره.
ګلالی (gwalālay) ص. نر.م. ښایسته، ښکلی.
ګل اندام (gwalandám) ص.نر.م. ۱) نرم و نازک بدن لرونکی؛ ۲) مج. معشوقه. محبوبه.
ګلانه (gulāná) ښځ.م. هغه شی (پیسې) چې چاته د زېرې په راوړو ورکول کېږي.
ګلبارخو (gwalbārxú) ص.نر.م. ګل [illegible]ګي، ګلعذار، ګل رخسار.
ګل ببری (gwalbabráy) نر.م. دزنانه وو په تیکریو کې یو ډول ګلکاري.

ګلبخور (gwalbaxúr) نر.م. ګلخوریه، سونګری، هغه بوټی چې د قوت باه د زیاتولو لپاره په چلم کې څکل کېږي.
ګلبدن (gwalbadán) ص. نر.م. ۱) نرم و نازک بدن لرونکی؛ ۲) مج. معشوق، محبوب؛
ګلبرګ (gwalbárg) نر.م. د ګل رنګینې پاڼې.
ګلبڼ (gwalbáṇ) نر.م. ګلباغ، د ګلو باغ، ګلستان، ګلزار.
ګلبوټی (gwalbúṭay) نر.م. د ګل بوټی، بته ګل.
ګلپاڼه (gwalpáṇa) ښځ.م. د ګلو پاڼه، د ګل پاڼه، ګلبرګ.
ګل پاڼیزک (guwalpāṇizák) نر.م. یو ډول سابه.
ګلپرخه (gwalpárxa) ښځ.م. پرګلپاڼه پرته پرخه، پر ګلپاڼه شبنم.
ګلپرهر (gwalparhár) نر.م. د پرهار ګل (شاعرانه تخیل).
ګلپلور (gwalplór) ص. نر.م. ګل پلورونه، ګل خرڅونه، ګل فروشي.
ګلپلوری (gwalplóray) ص.نر.م. ګل خرڅوونکی، ګل پلورونکی، ګل فروش.
ګلپوش (gwalpóš) نر.م. مف. ۱) په ګلانو کې پټ شوی؛ ۲) مج. د ګلونو په څېر جامې اغوستی.
ګلپي (gwalpí) نر.م. ګوپي، یو ډول سابه دي.
ګل تنۍ (gwaltaṇáy) ښځ.م. د اسپې په غاړه کې تړل شوې پټۍ، پټاره یې هم بولي.
ګل توت (gwaltút) نر.م. د غټو پاڼو لرونکی هغه توت چې د کاغذ په جوړولو کې کارئنې اخلي.
ګلټ (gıláṭ) نر.م.ج. ۱) زېړ رنګ لرونکی فلز؛ ۲) د تویک ګېټ.
ګلټول (gılāṭawə́l) مص. مت. رنګول، په ګلټو ملمع کول، زرل، زرو بول.

**ګلټي** (gılṭí) ص. نب. د ګلټ، ګلټ ته منسوب.

**ګلټپډل** (gılaṭpḍál) مص.ل. په ګلټو باندې پوښل، ملمع کېدل.

**ګل جړی** (gwaljaṛáy) ښځ.ج. ګل څړی، نښه، څړی، نښانه، نښکه، کهاړه، ګل څړی.

**ګلچ** (gıláč) نر.م. توبره، خورځی، خورجین.

**ګلچین** (gwalčín) ص. نر.م. ۱) کوکي ځاني، ګل ځان، څوک چې ګلان ټولوي؛ ۲) مج. باغوان.

**ګلڅاند** (gwalčánd) ص.نر.م. (ج. ګلڅاندي) ګل ځانی، ګل څاندی، ګلچین.

**ګلڅاندي** (gwalčāndí) ښځ.م. ګل اونښه، ګل اونون، ګلچیني.

**ګل ځانی** (gwalčāṇáy) ص.نر.م. و.ګ. ګلڅاند.

**ګل څېر** (gwalčér) ص. نر.م. ګلچهره.

**ګلخونه** (gwalxúna) ص. ښځ.م. د ګلونو ساتلو ځای، کوکۍ خونه.

**ګلخرینګه** (gwalxarínga) ښځ.م. مینا، ښارو، ښارونی؛ یوه مرغۍ ده چې زر رووړدې کېږي.

**ګلخوره** (gwalxurá) ښځ.م. و.ګ. ګلبخوره.

**ګلخی** (gwalxáy) ښځ.م. دارو، یو نغری چې کوچنیان په کې ګازرې پخوي.

**ګلخینګی** (gwalxíngay) نر.م. یو تریخ بوټی چې شین ګل لري.

**ګلدانی** (gwaldānáy) ښځ.م. ګلنی، د ګلو د اېښودلو کلالي لوښی.

**ګلدوز** (gwaldúz) فا. نر.م. هغه څوک چې په توکرانو کې ګلان ګنډي.

**ګلډ** (glaḍ) نر.م. خریلی سر، بې وېښتو سر.

**ګل ډاګ** (gwalḍág) نر.م. ګل ډښت، ګلمیره، ګل بیابان.

**ګلډانګ** (gwalḍáng) نر.م. یو ډول سپی.

**ګل رانی** (gwalrāṇáy) ښځ.م. کمبلی، بابکی، ببیرکه، یو ډول الوتونکی حشره ده.

**ګلرخ** (gwalrúx) ص.نر.م. ګلالی، پی مخی، ګلرو، ګل مخی، د ګل په څېر مخ لرونکی.

**ګلزار** (gwalzár) نر.م. ۱) د ګلونو ځای، د ګلشن، کوکیانه؛ ۲) مج. باغ، ګلستان.

**ګل زویه** (gwalzoyá) ښځ.م. دغره چای، سمسوک، یو ډول ګل دی چې د چایو پر ځای کارېږي.

**ګل زېړی** (gwalzeráy) ښځ.م. و.ګ. ګلجړی.

**ګلږلی** (galẓaláy) ښځ.م. ګل (gal) هغه غته ږلۍ چې فصلونه خرابوي.

**ګلساز** (gwalsáz) ص.نر.م. خپلاسي (مصنوعي) ګل جوړوونکی.

**ګلسرین** (galısrín) نر.م. یو ډول مایع غوړ دارو.

**ګلسیمه** (gwalsíma) ښځ.م. د ګلو سیمه، د ګلو منطقه، ساحهء ګل.

**ګلشک** (gwalšák) نر.م. ګلاشک، یو ډول غرنی ګل دی چې بنفش رنګ لري.

**ګلعذار** (gwalʿuzár) ص. نر.م. ۱) د ګل په څېر رخسار لرونکي؛ ۲) مج. معشوق، ګل غوټی.

**ګل غوټی** (gwalğuṭáy) ښځ.م. ګل مونګره، ناغوړېدلی ګل، منجره، بنجره.

**ګل غونچه** (gwalğwančá) ښځ.م. ګلموښته، ګلغنچه، ګل ګېډۍ، د ګلو ګېډۍ.

**ګلفام** (gwalfám) ص. نر.م. ګلفم، تنګه خوله؛ ۲) مج. مشعوق، محبوب.

**ګلقند** (gwalqánd) نر.م. ګل کند، یو راز دارو دی چې د ګلابو له ګل څخه جوړېږي.

**ګلکار** (gılkár) ص. نر.م. خټګر، معمار.

**ګل کاري** (gwalkārí) ص. ښځ.م. په جامو او کې د ګلانو او بوټو نقشې جوړولو کار.

**گلکاري** (gılkārí) ص. ښځ.م. د ختو او تیږو یا خښتو دېوال جوړونه، معماري، ختګري.

**گل کڅ** (gwalkáč) نر.م. گل ورشو، گل لرونکی کڅ.

**گلکڅونه** (gwalkacúna) نر.ج. د گلونو کڅونه، د گلونو ورشوګانې.

**گل کر** (gwalkár) نر.م. د گلو کر، گل کرنه.

**گل کنکړ** (gwalkankáṛ) نر.م. گل ډنډر، بندک.

**گلګنډ** (gwalgánḍ) نر.م. گل ګنډنه، سکوینه، گل دوزي.

**گلګنډنه** (gwalganḍána) ښځ.م. و ګ. گلګنډ.

**گلګون** (gwalgū́n) ص. نر.م. ۱) د گل په څېر، گلرنګ؛ ۲) مج. سور رنګ.

**گلګی** (gılagáy) نر.م. دغوا وروکی خوسکی.

**گل ګېډۍ** (gwalgeḍə́y) ښځ.م.ج. گلدسته، گل غونچه، د گلونو ګېډۍ.

**گل ګل** (galgál) نر.م ۱) کلکل، غرتو، تتو، غرتن؛ ۲) د نارنج په څېر یوه مېوه.

**گل ګوټي** (galgúṭi) ص.نر.ج. و ګ. ګاړګوټي.

**گل ګوټو** (gwalgū́ṭu) نر.م. ۱) د ښاروېو د مرۍ بندېدو یوه ناروغي؛ ۲) مج. د مرۍ غوټه.

**گل لښته** (gwallaṣ́ta) ښځ.م. د گلو لښته، د گل څانګه، شاخچه، گل.

**گلماخۍ** (gwalmāxə́y) ښځ.م. ۱) د سپینو زرو یوه ښځینه ګاڼه؛ ۲) یو ډول بوټی دی.

**گلماله** (gılmālá) ښځ.م. ختمونبی، ختماله.

**گلمخې** (gulmáxe) ص. ښځ.م.ج. د گل غوندې مخ لرونکې، گلرخه، گلرو.

**گل مر** (gwalmár) نر.م. کافرگل، نمرگله

**گلمل** (galmál) نر.م. ککړ، لیت پیت وینو او نورو شیانو ککړ، لړلی.

**گلملتوب** (galmaltób) نر.م. ...

**گلملول** (galmalawə́l) مص. مت. ککړول، په ختو، وینو او نورو شیان لیت پیتول.

**گلملېدل** (galmaledə́l) مص.ل. ککړېدل، لیت پیتېدل.

**گل موښته** (gwalmuṣ́ta) ښځ.م. گل ګېډۍ، گل غونچه.

**گل مونګره** (gwalmū́ngrá) ښځ.م. گل غوټۍ، خوغاړه.

**گلمیا** (gulmyā́) ښځ.م. د کبانو د جال هغه خانې چې رسۍ په کې اچول کېږي.

**گل مېخ** (gwalméx) نر.م. غټ سری مېخ، گل مېخی.

**گل مېخۍ** (gulmexə́y) ښځ.م.ج. د سپینو زرو یو ډول پسول دی چې په لستونو کې یې ټک وهي.

**گلنار** (gwalnā́r) نر.م. ۱) د انار گل؛ ۲) سور رنګ لرونکی؛ ۳) نرګس ته ورته؛ ٤) یوه بې مېوې ونه چې د انار په څېر ده.

**گلندوری** (glandū́ray) نر.م. مرچ، سور مرچکی.

**گلو**[۱] (gulū́) نر.م. هغه لرګی چې د ژرندې تیر له پل سره تینګوي.

**گلو**[۲] (galū́) نر.م. ۱) توکه، شتی، تانته؛ ۲) د کیوړې گل؛ ۳) ډومبکی، تمبکه، پیاځې، دګبین وړی.

**گلواره** (galwārá) ښځ.م. د آس څولۍ، خورجین.

**گلوانډ** (gulwánd) نر.م. د شومړو د کڅوړې د راڅوړندولو تناب.

**گلوبند** (gulūbánd) نر.م. ۱) غاړه کۍ، یوه ښځینه ګاڼه ده؛ ۲) دغاړې دسمال.

**گلوټ** (galwáṭ) نر.م. د غوښې توټه.

**گلوټه** (galuṭá) ص. ښځ.م. ۱) د غوښې یا د ختو غټه ټوټه؛ ۲) غټه مرۍ، غټ کپ، خمڅه.

**گل ورشو** (gwəlwaršó) ښځ.م. د گلو ورشو، گلسیمه، بیشه، گل.

**گلورین** (gulwarín) نر.م. گل ورورنکی، گل نولونکی، گل باران، گلریز.

**گلوزمه** (gwəlwázma) ښځ.م. گلرنگه، گل ته ورته، گل غوندې، گلفام.

**گلوزم** (gwəlwázam) نر.م. گل بوی، د گل بوی.

**گلوښته** (galúṣta) ښځ.م. متروکه، قمچینه.

**گلول** (gwalawə́l) مص. مت ۱) اور مړ کول؛ ۲) مج. زغمل، تحمل کول.

**گلوله** (galulá) ښځ.م ۱) ورو کی غونداری، گیتی؛ ۲) گلگله، پکوړه؛ ۳) گولۍ، کارتوس.

**گل وله** (gwəlwála) ښځ.م. د گلونو والا وله، گل بید.

**گلوه** (galwá) ص. نر.م. ۱) یو ډول مرز چې توره یا سره غاړه لري؛ ۲) ص. ښځ.م. د غوایي د خرمنې شا وخوا چې گندل شوې وي.

**گله** (galá) ښځ.م. رمه، پاده، کندک، گورم.

**گله بان** (galabā́n) ص.نر.م ۱) شپون، شپونکی؛ ۲) پاده وان، ساروان؛ ۳) اسبون، اسبه.

**گله گله** (gálagála) د مرزانو د نیولو لپاره آواز.

**گله گرگی** (galagárgay) نر.ج. گگرگی، د واورې ورې ورې دانې چې د ږلۍ غوندې وریږي.

**گلی** (galə́y) ښځ.م ۱) ږلۍ؛ ۲) د کوچنیانو یوه لوبه.

**گلی** (guláy) نر.م. ام الصبیان، د کوچنیانو یوه ناروغي ده.

**گلي** (gulí) ص. یو ډول سره منه.

**گلې** (galé) ښځ.ج. یوه ناروغي ده چې په مرۍ کې غوټې پیدا کیږي.

**گلیا** (galyā́) ص.نب ۱) ډېر پوخ، خوږین؛ ۲) وېلې شوې؛ ۳) ډنگر، لاغر، خوار.

**گلیخار** (gulixā́r) نر.م. یو ډول سره درمل چې د سترگو او خولې پخېدو لپاره کاریږي.

**گلټی** (guləṭáy) ص. نر.م. یو ډول توپک و.

**گلېدل** (galedə́l) مص. ل. ۱) ډنگرېدل، خوارېدل؛ ۲) ویلې کېدل.

**گلېډنډه** (galeḍánda) نر.م. ډنډه گولۍ، شوتۍ ډنډۍ، کیچ ډنډۍ، د کوچنیانو یوه لوبه.

**گلېگه** (galegá) ښځ.م. شودیاره شوې ځمکه.

**گلیم** (glīm) نر.م. تغر، خښنی، کښلی.

**گلیون** (gwalyū́n) نر.م. د گلو سیال، په گلونو کې گرځېدنه، گل ننداره، گلگشت.

**گم**(۱) (gam) نر.م. ج. ۱) سرېښ، څلېښ، سرېښ؛ ۲) اوری، د غاښونو ښخ پوښونکې غوښه.

**گم**(۲) (gum) ص. نر.م. ۱) لرې، غایب؛ ۲) ضایع، توی؛ ۳) ناپیدا؛ ٤) مج. پریشان، وارخطا.

**گمارل** (gumārə́l) مص. مت. ۱) گومارل، امر کول؛ ۲) مقررول، سپارل؛ ۳) پارول، پاڅول؛ ٤) انگېدل، ننگېدل.

**گمارونی** (gumārū́nay) ص. نر.م. ۱) مشر، د سر سړی؛ ۲) لارښودونکی.

**گمان** (gumā́n) نر.م. و.گ. گومان.

**گمبش** (gambū́š) ص.نر.م. دلویو پښو یا پنجو خاوند.

**گمبزی** (gambízay) نر.م. نارنج.

**گمبېزی سورن** (gambézaysurán) نر.م. نارنجي کونگ او مست اس.

**گمبله** (gambelá) ښځ.م. کمبله، گومبله، یوناني دوا ده چې څارویو ته ورکول کېږي.

**گمراه** (gumrā́) نر.ج ۱) بې لارې، ښوییدلی؛ ۲) مج. بې دینه؛ ۳) اوړېدلی، بې لارې.

**گمرک** (gumrák) نر.م. هغه دولتي اداره چې له سرحد نه د مالونو د صادرولو او واردولو مالیه

او محصول اخلي.

**گمند** (gamánd) ص. نر.م. گمنده، چاغ سړی.

**گمه** (gamá) ښځ.م. وړوکی لښتی چې د مرغیو نیولو دام په کې ږدي.

**گمیزه** (gamíza) ښځ.م. وگ. گومبته.

**گن** (gan) نر.م. ۱) عادت، خوی؛ ۲) ښه والی؛ ۳) جوهر، هنر؛ ٤) غوزه، د اوښانو او غوایانو غټ منکوړ.

**گناه** (gunā́h) ښځ.نر.م. ۱) وبال، بدکار، بد عمل، جرم، خطا؛ ۲) نافرماني.

**گناهکار** (gunāhkā́r) ص.نر.م. د خدای گناهکار، مجرم، بدکاری، گناهگار.

**گنانگول** (gunāngúl) نر.م. غرنی پالک، شلخی.

**گنايي** (ganā́yī) ښځ.م. دژرندې آبخانه، لمخانه، د ژرندې تر کوټې لاندې د اوبو د تېرېدلو ځای.

**گنتری** (gantráy) نر.م. گنتی، گېنتی، کولنگ.

**گنته** (gantá) ښځ.م. گونته، گنتی.

**گنتی** (gantáy) ص. نر.م. لنډی، منډی، چیتکی، ټیټکی سړی، مندری.

**گلتی** (gal táy) ښځ.م. غرنی بوټی دی چې بیخ یې د کالو پرېمینځلو لپاره کارېږي.

**گنټه** (gınṭá) ښځ.م. شپېته دقیقې، یو ساعت.

**گنټی** (ganṭáy) ښځ.م. گنټه، گنټری، یو ډول کوداله چې سخته ځمکه پرې کنستل کېږي.

**گنج** (ganj) نر.م. ۱) خزانه، گنجینه؛ ۲) زېرمه، گودام؛ ۳) د مېوې راغونډولو شکری؛ ٤) د سر وېښته نه کېدل، گنجیتوب.

**گنجایش** (gunjā́yaś) نر.م. ۱) ځایېدنه، ځای؛ ۲) مج. فایده، بچت.

**گنجپور** (ganjpū́r) نر.م. کونی کبر، چنگابس، کوني کاتر.

**گنجرخی** (ganjarxā́y) نر.م. دورخونو مروړی په ورخونو کې د اوبو د وېشلو لرگی.

**گنجره** (ganjrá) ښځ.م. غازه، سرخي، پوډر.

**گنجلک** (gunjulúk) نر.م. وگ. گونجلک.

**گنجور** (ganjū́r) ص.نر.م ۱) خزانه؛ ۲) خزانه دار.

**گنجی** (ganjáy) ص. نر.م. ۱) پک، لېهدا؛ ۲) د جوارو هغه وږی چې یو څو داني په کې وي.

**گنجی** (ganjáy) نر.م ۱) جاکټ، بنیان؛ ۲) غونډاری، د سنیو غونډاری؛ ۳) ښځ.م. ج. ټپوس غونډې. یو مردار خور مرغه.

**گنجینه** (ganjína) ښځ.م. خزانه، مخزن، زېرمه.

**گنچه** (gancá) ښځ.م. گنځه، غوري مست، یو ډول خودرو په خوشبویه بوټی دی.

**گنځې** (gunǰé) ص. ښځ. م. ج. وگ. گونجه.

**گنځپه** (ganǰapá) ښځ.م. ۱) گنځپه؛ یو ډول گیډړه ده؛ ۲) نولی.

**گنځه** (ganǰa) ښځ.م. خنځه، خنځه گوته [illegible]

**گند**(۱) (gand) نر.م. ۱) خځلې؛ ۲) چټلي، ناپاکي؛ ۳) مج. بدبويي؛ ٤) خوسا.

**گند**(۲) (gand) اد. گونډې، گنې، گڼه، گنې.

**گنداو** (gandā́w) نر.م. ولاړې اوبه، ولاړې خوسا شوې اوبه.

**گندبلا** (gandbalā́) ښځ.م. ناولتیا، بېکاره او معمولي شی.

**گندخېره** (gandcéra) ښځ.م. ښابکه، ښارکه، شامتوره، یو ډول توره مرغۍ ده.

**گندک** (gandák) نر.م. گوگړ، گندهک، گیگړ، یو ډول کیمیاوي معدني سلفر.

**گندکه** (gandaká) ښځ.م. د بېډۍ یا سپېښتې یو ډول لوبه چې (سه بجل) یې هم بولي.

**گندگي** (gandagí) ښځ.م. ناولې ځیز، خوسا شی.

**گندنه** (gandaná) ښځ.م. اړکی، کوکی.

**گنده** (gandá) ص. ښځ.م. ۱) ناپاک، ناولی، پلید؛ ۲) بدکردار، شریر؛ ۳) زړه خرقه، د ملنگانو کند؛ ۴) هغه غله چې نايي یا استاکار یې د کال په پای له خلکو نه اخلي.

**گنده بوټی** (gandabū́ṭay) نر.م. یو ډول تریخ، خودرویه بوټی دی.

**گندړی** (gandaṛáy) نر.م. یو غرنی بوټی دی چې بد بوی لري او گنده فېروزه ورنه لاس ته راځي.

**گنده خړ** (gandaxáṛ) نر.م. گنده خړی، نېزوری، هغه خځلې چې سیلاو له ځان سره راوړي وي.

**گنده خړه** (gandaxáṛa) ص. ښځ.م. ناولې، چټله.

**گنده لېوه** (gandálewa) نر.م. سرکوزی، خنزیر، سور، بدځناور، ییږ.

**گنده مار** (gandamā́r) نر.م. ۱) زووېل، زاویل، خول؛ ۲) گندگیر، کوچکر، لاگ ساک.

**گنده نل** (gandanál) نر.م. دورمه، کړکی.

**گنده هوږه** (gandahū́ẓa) ښځ.م. گندنه.

**گندېر** (gandér) نر.م. و.گ. گنډېری.

**گندېرڅر** (gandercár) نر.م. گندېرچر، گنډېری، زهربوټی، گنده خر.

**گنډ** (ganḍ) نر.م ۱) گینده، جوړښت سکوی، تکی؛ ۲) ډول، هغه ټوټه چې د گرېوانه لاندې گنډل کېږي؛ ۳) پاموړه.

**گنډاسه** (ganḍā́sa) ښځ.م. درنه چاړه، توکیا، توکه.

**گنډڅېره** (ganḍcerá) ښځ.م. ځانبکه.

**گنډکپ** (ganḍkáp) ص.نر.م. گړ گپ، دوکه باز، کیسه بر، جیبونه وهونکی.

**گنډگین** (ganḍgín) ص.نر.م. نخي، سپنسین.

**گنډل** (ganḍə́l) مص. مت. تکوهل، بخی، تېرول، سره یو کول (په ستن یاد خیاطۍ په ماشین).

**گنډل پېرل** (ganḍəlperə́l) مص. مت. گنډل، سکنل، په ستن او تار کار کول.

**گنډلی** (ganḍaláy) ښځ.م. گنډه، غوټه، پنډه کی، پنډوکی، گټلی.

**گنډنی** (ganḍanáy) ص.نر.م. لنډ او بې لستوڼو کمیس، گنډولی، گنډی.

**گنډوپړ** (ganḍupáṛ) نر.م. ټرنه پرانیستنه، اړوتړ، چل وتړ.

**گنډون** (ganḍū́n) نر.م. گنډنه، گنډل، پیوند.

**گنډونکی** (ganḍū́nkay) فا. نر.م. خیاط، گنډونی، هغه چې کالي گنډي، درزي.

**گنډونی** (ganḍū́nay) فا.نر.م. گنډونکی، خیاط.

**گنډه** (gánḍa) ښځ.م. غوټه، پنډوکی؛ ۲) بډه، د پړتوگابې ځای؛ ۳) د لرگي غوټه؛ ۴) مج. جادو.

**گنډه څر** (ganḍacár) نر.م. گنډېری، گنډېر، خرزهره، سم الحمار.

**گنډه گنډه** (gánḍagánḍa) ص. گونځې گونځې، گونجې گونجې، کالکوټې.

**گنډه تل** (ganḍatál) نر.م.و.گ. گندنه.

**گنډه کول** (ganḍakawə́l) ښځ.م. غوټه کول.

**گنډهېر** (ganḍhér) نر.م. ۱) گنډېر، د زهرو په څېر ډېر تریخ؛ ۲) مج. د زهرو، وژونکی.

**گنډی** (ganḍáy) ص. نر.م. ۱) و.گ. گنډولی؛ ۲) د دمړي غلورمه برخه، ۳) د پخوانۍ پیسې شپاړسمه برخه؛ ۴) د کوچنیانو لنډو لستوڼو والا کمیس.

**گنډۍ** (ganḍə́y) ص. ښځ.م. د وړیو یا پنبې جاکټ، کوچې، جمپر، د شپانه چپنه.

**گنډیاره** (ganḍyā́ra) ښځ.م. یو ډول نبات دی چې گنډیاله یې هم بولي.

**گنډېر** (ganḍér) نر.م. و.گ. گنډهېر.

**گنډېرڅه** (gandercá) ښځ.م. غټه مېږه.

**گنډېرمری** (gandermaráy) ښځ.م. زهر مهره، تریاق، یو ډول مهره چې د زهرو اثر لیرې کوي.

**گنډېرن** (ganderán) نر.م. زهر لرونکی، هغه شی چې زهر لري.

**گنډېری** (ganderáy) ښځ.ج. د سپین کرې گنې ټوټه، ککیری، منتهری، گنېرکه.

**گنډېری** (ganderáy) نر.م. یو غنګلي او غرنی بوټی دی چې سره او سپین گلان کوي.

**گنر** (ganár) ص. نر.م. زور او ډنگر غويی.

**گنس** (gans) ص. نر.م. گیچ، بې سده، بې هوښه.

**گنستوب** (ganstób) نر.م. بېهوښي، سرندالي، واگنتوب، گنستیا، سرگرداني.

**گنسول** (gansawә́l) مص.مت ۱) بېهوښه کول، گیچول؛ ۲) سرگردان کول، پرېشانه کول.

**گنسېدل** (gansedә́l) مص.ل. ۱) بېهوښه کېدل، بې سده کېدل؛ ۲) پرېشانه کېدل.

**گنکي** (gankí) ص. نب. د کومې سختې ضربې له امله بېهوښي پیدا کېدل.

**گنگ** (gáng) نر.م. ۱) دکوژدې بلنه؛ ۲) ص.نر.م وارخطا، اوتر؛ ۳) نر.م. تهکس، هغه پیسې چې یو هندو به د ځان د ژغورنې لپاره یو پښتون ته ورکولې؛ ۲) یو ډول مرغی؛ ۳) مج. ختیځ.

**گنگان** (gangā́n) نر.ج. یو ډول بوټی دی چې د پانو دوره یې د کوچنیانو په مغانو کې اچول کېږي.

**گنگټ** (gəngáṭ) نر.م. و.گ. گونگټ.

**گنگخر** (gangxár) نر.م. و.گ. گنده خر.

**گنگخر** (gangxár) نر.م (ج. گنگخرې) د سېلاب په مخکې واره واره لرگي.

**گنگر** (gangár) نر.م. د سنډا د ملا تیر.

**گنگره** (gangrá) ښځ.م. کړاو، تکلیف، زحمت.

**گنگري** (gangarí) ص. ښځ.م. تینگه ختېه.

**گنگړ** (gangáṛ) نر.م. یو ډول گانه یا پسول.

**گنگس** (gangs) ص.نر.م. ۱) وارخطا، سرگردان؛ ۲) بې خوده، بېهوښه، بې سده.

**گنگستیا** (gangstyā́) ښځ.م. گنگستوب، گنگسي، بېسدتیا، گیچي.

**گنگ سنگ** (gangsáng) ص.نر.م. گنگ منگ، غلی، چوپ، گونگ سونگ.

**گنگسوونکی** (gangasawū́nkay) نر.م. بېسدوونکی، بېهوښه کوونکی.

**گنگلو** (ganglū́) نر.م. تېپر، شلغم.

**گنگو** (gangū́) نر.م. ۱) زعفران؛ ۲) مج. زیړ، زیړونکی.

**گنگوچه** (gangučá) ښځ.م. د انگورو وړی، د انگورو غونچه، گنگوری، وابښکی.

**گنگوری** (gangū́ray) نر.م. ډنډوری، د انگورو غوشه، د کېلو وړی، وابښکی، د خرما وړی.

**گنگوړه** (gangū́ṛá) ښځ.م. گانگوړه، یو بوټی دی.

**گنگوړی** (gangū́ṛay) نر.م ۱) گانگوړی؛ ۲) ترترې توتوړی، تتله؛ ۳) گنگوسی، گونگوسه.

**گنگوسه** (gangūsá) ښځ.م. ۱) آوازه، شهره، انگازه، ښکالو؛ ۲) افواه، د دروغو خبره خپرېدنه.

**گنگوسې** (gangūsé) ښځ.ج. و.گ. گنگوسه.

**گنگوماښام** (gangūmāṣā́m) نر.م. رڼا ماښام، ماښام چې پوره تیاره نه وي، گونگوڼ ماښام.

**گنگي** (gangí) نر.ج. ۱) گنده گي، پلیتوالی؛ ۲) خخله؛ ۳) د تتې مرداري.

**گنگېلا** (gangelā́) ښځ.م. (ج. گنگېلاوې) انگولا.

**گنگیله** (gangilá) ښځ.م. و.گ. انگوله.

**گننی** (gananáy) نر.م. وروکې سیدې رودونکی وری.

**گنني** (gananáy) ښځ.م.ج. د اوښن پچه، د اوښن سوټه.
**گنوار** (ganwā́r) ص.نر.م. ۱) باندیچی، باندیځی؛ ۲) مج. ساده کلیوال سړی.
**گنه**(۱) (guná) ښځ.م. نښه، گونه، نښان، علامت.
**گنه**(۲) (gána) اد. ۱) باړې، گنې؛ ۲) ښځ.م. و گ. گناه.
**گنهار** (ganhā́r) نر.م. گنهار، انگازه، گوپار.
**گنه درو** (ganadráw) نر.م. ۱) د رشقې او شوتلو لومړنی لو؛ ۲) گنه درب، نارسېدلی توت.
**گنهر** (ganahár) نر.م. یو ډول سابه دي.
**گنهگار** (ganahgā́r) نر.م. گني، نیشکر.
**گنهگاره** (gunahgā́ra) ښځ.م. گناهگاره، جرمانه، توغم، جریمه، کفاره، د گناه معاوضه، ناغه.
**گنې** (gáne) اد. نو، نو بیا، گوندې، گنه.
**گنی** (ganáy) نر.م. (ج. گني) نیشکر.
**گنۍ** (ganə́y) ښځ.م.ج. د مچیو یا ډنبرو گبین.
**گڼ** (gaṇ) نر.م. ۱) ډېر زیات، په شمېر زیات، گڼ گور، سره نښتي دي؛ ۲) گورم، پاده
**گڼا**(۱) (gaṇā́) ښځ.م. د گوڼ گوڼ اواز.
**گڼا**(۲) (gaṇā́) فا. نر.م. څوک چې په پوزه کې گڼ گڼ کوي، چې ژبه یې نښلي، د پوزې د هوا په مرسته خبرې کوونکی.
**گڼاری** (gaṇā́ray) نر.م. په پوزه کې د خبرو آواز، د گڼهو آواز، د گوڼ گوڼ آواز.
**گڼټوب** (gaṇtób) نر.م. گڼتیا، گڼوالی، ډېروالی.
**گڼ رنگی** (gáṇrangay) نر.م. فصل رنگړی کونه، له فصل نه گڼ بوټي ایستنه، نري کول.
**گڼږی** (gaṇžáy) نر.م. گنگوسه.
**گڼ شمېر** (gáṇšmer) نر.م. گڼ، ډېر، زیات شمېر، زیات تعداد.

**گڼ کپ** (gaṇkáp) ص. نر.م. و گ. گنډ کپ.
**گڼ کوریز** (gaṇkoríz) نر.م. هغه کلی، سیمه چې گڼ کورونه ولري، خانه های متراکم.
**گڼکی** (gaṇkáy) ص.نر.م. گڼ، د گڼ تصغیر نوم، لږ گڼ.
**گڼ گچه** (gaṇgacá) ښځ.م. د انگورو وړې.
**گڼ گڼ** (gáṇgaṇ) نر.م. په پوزه کې خبرې کونه، گوڼېدل، بنگېدل.
**گڼ گڼی** (gáṇgaṇy) ص.نر.م. غوڼی، په پوزه کې خبرې کوونکی، خنخونی، گوڼ گوڼی.
**گڼ گور** (gaṇgū́r) ص. نر.م. و گ. گور.
**گڼ گوندیز** (gaṇgwandíz) نر.م. گڼ گوندي، ډېر گوندي، ډېر حزبي، څو گوندیز.
**گڼ گین** (gaṇgín) ص. نر.م. دسپنسیو، سپنسین.
**گڼل** (gaṇál) مص. مت. ۱) قیاس کول، خیال کول، گومان کول؛ ۲) شمېرل؛ ۳) منل، قبلول.
**گڼل کېدل** (gaṇalkedál) مص. ل. پوهېدل.
**گڼ مېشتی** (gaṇmeštay) ص.نر.م. گڼ استوگن، پرنفوس لکه ښار یا هېواد.
**گڼ مېشتي** (gaṇmeští) ص. ښځ.ج. گڼ استوگني، پرنفوسي، تراکم نفوس.
**گڼنی** (gaṇanáy) نر.م. زېلانځ، زېلان، رحم.
**گڼوالی** (gaṇwā́lay) ص.نر.م. گڼتیا.
**گڼ وگړی** (gáṇwagáṛay) ص.نر.م. گڼ وگړنی، پرنفوس، گڼ مېشتی.
**گڼول**(۱) (gaṇawə́l) مص. مت. په خبرو راوستل، گړول، پوښتل.
**گڼول**(۲) (gaṇawə́l) مص.مت. ۱) گورول؛ ۲) ډېرول زیاتول.
**گڼ ولسي** (gaṇwulasí) ص.ښځ.ج. گڼ ملیتي څو ملیتي، چند ملیتي.

**گڼون** (gaṇū́n) نر.م. شمېرل، شمارل، ګنول.
**ګڼونه** (gaṇawə́na) ښځ.م. ۱) ډېرول، ګڼ ګورول؛ ۲) ګڼونه، په خبرو راوستنه.
**ګڼونی** (gaṇū́nay) فاعل.م. شمېرونکی، محاسب.
**ګڼه** (gáṇa) ښځ.م. ۱) شماره، نمبر، شمېره، د اخبار يارسالې يا بل شي لمبر، جلد؛ ۲) لکه چې.
**ګڼهار** (gaṇahā́r) نر.م. غونهار، ګنهاری.
**ګڼه بوز** (gaṇaṭ ū́z) نر.م. زرور، مضبوط او تکړه، په خبرو اترو کې تکړه او جزار.
**ګڼه خور** (gaṇaxwár) نر.م. هغه څرځای يا ورشو چې واښه ډېر ولري.
**ګڼه ګونه** (gaṇagū́ṇa) ښځ.م. د خلکو زياتوالی، کثرت، يا د خلکو ازدحام.
**ګڼه وهل** (gaṇawahə́l) مص.مت. شماره وهل، نومره وهل، نمره زدن.
**ګڼ هېوادیز** (gaṇhewādíz) نر.م. ګڼ هېوادي، ځو هېوادي، چند کشوري.
**ګڼی** (gaṇáy) نر.م. غوټی، په پوزه کې خبرې کوونکی.
**ګڼېدل**[1] (gaṇedə́l) مص.ل. ډېرېدل، زياتېدل.
**ګڼېدل**[2] (gaṇedə́l) مص.ل. په پوزه کې خبرې کول، ګڼ ګڼ کول.
**ګڼېش** (gaṇḗš) ص.نر.م. کمزوری او ضعيف سری، مانده سری.
**ګڼيه** (gaṇyá) ښځ.م. ګانه، ګرو.
**ګڼيه وال** (gaṇyawā́l) نر.م. ګروي دار.
**ګو** (go) نر.م. ږو، سوګند، د ګواه مخفف، خدايږو.
**ګواتل** (gwātə́l) مص.مت. تېپي کول، ژوبلول.
**ګواټه** (gawāṭá) ښځ.م. ډېرۍ، ډېری، د خپياکو ډېری، ګوهاټه.
**ګواټی** (gowāṭáy) نر.م. بوم، ګونګ، يوه مرغه دی چې د شپې له خوا واره مرغان ښکار کوي.

**ګواخ** (gwā́x) نر.م. ۱) مرسته، ارخ، مدد، پره؛ ۲) پخلا کونه.
**ګواخل** (gwāxə́l) مص.مت. ۱) پخلاکول؛ ۲) مرسته کول، مدد کول.
**ګوار**[1] (gwā́r) نر.م. ۱) پاده، ګله، کوهار؛ ۲) د مزاج مطابق، ۳) مج. خوندور؛ ٤) بخيل؛ ٥) بدشکل؛ ٦) پوچ، ګنده؛ ۷) يو ډول مالګه ده چې ځاروي ته ورکول کېږي؛ ۸) سور، ګورا، پيرنګی؛ ۹) ډول، قسم.
**ګوار**[2] (gowā́r) ص.نر.م. ساده باده، بوله، جټ، بې تعليمه، جاهل، شوده بوده.
**ګوارچي** (gawā́rčí) ص.نر.م. پاده وان، ګله بان، غوبه، ګواري، شپونکی.
**ګواری** (gawārə́y) ښځ.م. بوری، د مزرو ځولۍ چې د خاورو چلولو لپاره کارېږي.
**ګواښ** (gwā́ṣ) نر.م. ۱) د جنګ نه جلا کونه؛ ۲) ثالثي، منصفي، منځګړتوب؛ ۳) درکه، ډارونه، تهديد؛ ٤) جګړې ته راولاړېدنه.
**ګواښکېښ** (gwāṣkéṣ) نر.م. جنګ و سوله، ژغورل، خلاصول، منځګړتوب.
**ګواښ ګر** (gwāṣgár) نر.م. و.ګ. ګواښ ګرندی.
**ګواښ ګرندی** (gwāṣgrə́nday) ص.نر.م. درېيمګړی، منځګړی، ګواښ ګر، ګواښ ګری.
**ګواښل** (gwāṣə́l) مص.مت. ۱) ژغورل، بچ ساتل؛ ۲) جنګ ته تيارول، راپارول.
**ګواښليک** (gwāṣlík) نر.م. اخطارليک، اخطاريه.
**ګواښندوی** (gwāṣandúy) نر.م. و.ګ. ګواښ ګرندی.
**ګواښنه** (gwāṣána) ښځ.م (ج. ګواښنې) ګواښول، ګوتخڼدنه، اخطار.
**ګواښېدل** (gwaṣedə́l) مص.ل. ۱) تهديد کول، غورېدل؛ ۲) آماده کېدل، جنګ ته تيارېدل.

**ګواکې** (gwā́ké) اد. لکه چې، ګویا، دا چې، ګنې.
**ګوال** (gwā́l) نر.م. د غره یا غونډۍ د لمنې ځمکه چې ځوړنده وي.
**ګوالل** (gwā́lə́l) مص. مت. شهادت ورکول، ګواهي ورکول، ګواهي لودل.
**ګوانجه** (gawā́njá) ښځ.م. منداوو، غاښور، کبر.
**ګواه** (gawā́h) ص. نر.م. شاهد، ګواهي ورکوونکی، ثبوت ورکوونکی.
**ګواهل** (gawā́hə́l) مص. مت. ګوالل.
**ګواهي** (gawā́hí) ښځ.م. شهادت ورکونه، شاهدي.
**ګواهي لل** (gwā́hilə́l) مص. مت. شهادت ادا کول، ګواهي ورکول.
**ګوبا** (gobā́) ص. ښځ.م. کم عقله، غټه او چاغه ښځه، احمقه یا نادانه ښځه.
**ګوبری** (gubaráy) ص.نر.م. له ختې یا خاورې یا چونې او خاورې نه جوړ.
**ګوبلکه** (gubaláka) ښځ.م. ۱) یو ډول مرخېړی؛ ۲) پوکانۍ.
**ګوبه** (gubá) ښځ.م. کرکوره، یوه مرغۍ ده.
**ګوبیړ** (gubíṛ) ص. نر.م. ګوبار، بوډا، ډېر زوړ سړی، شیخ فاني.
**ګوپ** (gūp) نر.م. ۱) د غوبي یا اوښ کوپان؛ ۲) ګوجر؛ ۲) د سرو زرو زنځیر؛ ۳) د سهیل ستوری، د مني ستوری.
**ګوپال** (gupā́l) نر.م. یو ډول ګل دی.
**ګوپالا** (gupālā́) ص. نر.م. تیارخور، وریا غټې غټې مړۍ اخیستونکی.
**ګوپان** (gopā́n) نر.م. د ګوپ ستوری، د سهیل ستوری، د مني ستوري.
**ګوپړ** (gupáṛ) نر.م. و.ګ. ګوار.
**ګوپژن** (gupžán) نر.م. تبدیلي، تغییر، بدلون.

**ګوپړی** (gupṛáy) نر.م. د ګوډي، ژي یا مشک د څرمنې پیوند.
**ګوپله** (guplá) ښځ.م. ۱) مړی، نوړی، نسواله؛ ۲) ورېم، د خولې خوسا بوی.
**ګوپی** (gupáy) نر.م. و.ګ. ګلپی.
**ګوت** (gut) نر.م. ګوتمی، ګوته، ګوتمه، څلی، یو ډول ښځینه ګانه چې ښځې یې په ګوته کوي.
**ګوتار** (gūtár) ص.نر.م. کوتار، نښتی، اخته، ککړ، لړلی، بوخت، مبتلا.
**ګوتاوه** (gutāwá) ښځ.م. بوتاوه، څاربوته د شوتلو اوبوسو دروشته.
**ګوتځنډنه** (gwatčanḍána) ښځ.م. ګواښ، ګواښنه، توربرېښ، غاښ چیچي.
**ګوتخنه** (gwatxána) نر.م. د سپینبتې یو ډول لوبه ده.
**ګوتره** (gutrá) ښځ.م. یو بوټی دی چې په اوبو کې شین کېږي او لوی د نهر کوي.
**ګوتری** (gutráy) ښځ.م. ګوترې، پتاق، تهاره، کاسه، د مچوغنې یا لیندې کاسه.
**ګوتکی** (gwatkáy) ښځ.م. ګوته، ګوتې.
**ګوت ګوت** (gwátgwát) نر.م. پېچ پېچ، یو ډول لوبه ده چې د منځنۍ ګوتې په ښکاره کولو ترسره کېږي.
**ګوتګوتی** (gwatgūtáy) ص.نر.م. بدنام، سپک شوی، شاغو شوی.
**ګوتلکه** (gwatláka) ښځ.م. و.ګ. ګتلکه.
**ګوتلکی** (gwatlákay) نر.م. رسوا، د ژبو په سر، په خولو کې، انګشت نما.
**ګوتګی** (gwatkáy) نر.م. خچه ګوته، وړوکې ګوته.
**ګوتمنډی** (gwatmanḍáy) نر.م. ۱) ګوتمې ورکونه؛ ۲) عیب لټونه، اعتراض، الزام.

**گوتمو** (gwatmū́) ښځ.م. ۱) گوتمیر، گوتماغو، د ګنډلو یوه آله ده چې ښځې یې په گوته کوي؛ ۲) د تنې سوری، کاج.

**گوتمه** (gwatmá) ښځ.م (ج. گوتمې) و ګ. گوتمۍ.

**گوتمۍ** (gwatmáy) ښځ.م.ج. گوته، گوتمه، یوه ګاڼه ده چې په گوته کې اچول کېږي.

**گوتنیونه** (gwatniwə́na) ښځ.م. گوتنیوی، غندنه، نیوکه، تنقید.

**گوتنیوی** (gwatniwáy) نر.م. و ګ. گوتنیونه.

**گوتوړي** (gwatūŕi) نر.ج. دستاني، لاس پېلې، گوتمې، هغه دستاني چې د باز یا د باښې په لاس کښولو پر وخت په لاس کېږي.

**گوتول** (gwatawə́l) مص. مت. ۱) گوتې ورکول؛ ۲) عیب لټول، اعتراض کول؛ ۳) الزام لګول.

**گوته** (gwáta) ښځ.م ۱) د لاس یا پښو گوته؛ ۲) یوه پښتني ګاڼه چې په گوته کېږي؛ ۳) یوه لوبه ده.

**گوته په خوله** (gwtápaxulá) ص. ښځ.م. گوته په غاښ، حیران دریان، حق حیران.

**گوت لکه** (gwatláka) ښځ.م. ۱) شوره، گلکه، هغه جنۍ چې په بدو کې ورکول کېږي؛ ۲) په نښه کول.

**گوتی** (gū́tay) نر.م.ج. د ښکاري ټوپک د دارو وزن او اندازه.

**گوټ**(۱) (gwaṭ) نر.م. کونج، زاویه، گوښه.

**گوټ**(۲) (guṭ) نر.م. ۱) غرپ؛ ۲) د کوژدې یو رسم چې د جنۍ ورکولو اقرار په کې کېږي او د هلک خپلوانو ته شربت ورکول کېږي؛ ۳) د جولاګانو یوه آله؛ ۲) د سطرنج دانه؛ ۳) غبي او تنبل.

**گوټ**(۳) (goṭ) ص.نر.م. (مونثه بڼه یې گوټه) پڅ ذهنه، تنبل، کم استعداده، چې سبق یې زر نه زده کېږي.

**گوټ پېر** (gwaṭpér) نر.م. گوټ پېرۍ، د لارې کوږوالی یا کږلېچ.

**گوټ پېره** (gwaṭpéra) ښځ.م. تاو راتاو، گوټ پېچومی.

**گوټخونه** (gwaṭxū́na) ښځ.م. کوټنۍ، کوټګۍ، پسخانه.

**گوټ غاری** (gwaṭğāráy) ص. نر.م. گوټ ناستی، هغه څوک چې له خلکو نه گوښه ناست وي.

**گوټک** (guṭák) نر.م. ۱) د جرثقیل او نورو څرخ؛ ۲) و ګ. گوټکه(۱).

**گوټکه**(۱) (guṭká) ښځ.م. د تار گوټ یا کلوله.

**گوټکه**(۲) (gwaṭáka) ښځ.م. سپما، پس انداز.

**گوټ گورت** (gwaṭgurát) نر.م. د کوژدې یو رسم دی چې هلک ته په کې نکریزې پورې کېږي.

**گوټل** (guṭə́l) مص.مت. غرپ کول، په گوټ گوټ څښل.

**گوټله** (guṭlá) ښځ.م. ۱) د ټوپک گوټله، د ناوه یې ټوپک لټ یا ګېټ؛ ۲) د تار گوټ یا کلوله.

**گوټلۍ** (guṭláy) ښځ.م. د کوچنیانو لته یې چوشک چې غوړي، شریني او ... پکې ورکول کېږي.

**گوټ مېچ** (gwaṭméč) نر.م. د گوټ (زاویې) د مېچ آله، زاویه سنج.

**گوټ ناسته** (gwaṭnā́sta) ص. ښځ.م. گوښه ناستی، اعتکاف، گوښه ګیري.

**گوټناستی** (gwaṭnā́stay) ص.نر.م. گوټناست، گوښه یي، گوشه نشین.

**گوټن** (gwaṭán) نر.م. گوټین، گوټیز، زاویه لرونکی، گوشه دار.

**گوټ والی** (goṭwā́lay) نر.م. نالایق توب، پڅ ذهني، تنبلي، کم استعدادي.

**گوټول** (guṭawə́l) مص. مت. غبي کول، نالایقه کول، پڅ ذهنه کول.

**گوټه** (guṭá) ښځ.م. ۱) د سطرنج دانه؛ ۲) یادونه، حفظ کونه.

**گوټه گن** (guṭagán) نر.م. دوبندي، په سرک یا دره کې د ننوتو لاره.

**گوټي** (guṭí) ښځ.م. گوټلې، یو تریخ بوټی دی چې په یوناني درملنه کې هم کارېږي.

**گوټی** (gwaṭáy) نر.م. گونیا، کچه، یوه آله ده چې معماران ورباندې د میزان کارونه برابروي.

**گوټې** (guṭə́y) ښځ.م.ج. د سطرنج تخته.

**گوټېدل** (goṭedə́l) مص. ل. غبي کېدل.

**گوټین** (gwaṭín) ص. نر.م. گوټ لرونکی، زاویه لرونکی.

**گوجر** (gujár) نر.م ۱) یوه طایفه چې د غوا – مېښو ساتلو او پیو خرڅولو کاروبار کوي؛ ۲) د یو قوم نوم دی، ژبه یې گوجرو یا گجراتي بلل کېږي.

**گوجرکی** (gugarkáy) نر.م. د ملا د تیر مهره .

**گوجرو** (gujró) ښځ.م. د گوجر قوم ژبه، گجراتي ژبه.

**گوجک** (guják) نر.م. پتیره، د خمیره ضد.

**گوجکه** (gujáka) ښځ.م. یو ډول سوررنگی وړه حشره ده، د غره پیشی، حلزون.

**گوجی** (gū́jáy) نر.م. ۱) گوډړ، شاپېتی، صدف، یو بحري لعاب داره حیوان؛ ۲) د سترگي گل؛ ۳) کونجکه، خرمهره؛ ٤) خول، پوستکی.

**گوجي** (gují) نر.ج. هغه پې چې شلومبې په کې واچول شي او سمدلاسه ماسته جوړ کړی شي.

**گوچی** (gučáy) ښځ.م.ج. لپانکی، سمتی، ادک، یو ډول لوبه ده، لشپاک بازي.

**گوځ موځی** (gujmūjáy) نر.م. گځموزی، گونېس، غلی، هغه څوک چې ډېرې خبرې نه کوي.

**گوځڼ** (guǰáṇ) نر.م. گوزاڼ، گوزڼ، فالج، د بدن د ړچېدو مرض.

**گوڅړی** (gucráy) نر.م. پنه، گاولی، کېچی، کوڅړه، موچنه.

**گودا** (gudā́) ښځ.م. گوده، زړی، زنی، مغز، د مېوې یا تخم منځ برخه.

**گوداړه** (gudāṛá) ښځ.م. گوسره، په ورمېږ وهنه.

**گودام** (gudā́m) نر.م. گدام، ډېپو، زېرمه تون، د غلو دانو او نورو شیانو د زېرمه کولو ځای.

**گودان** (gudā́n) نر.م. چړچوبی، چارچوبی.

**گودانه** (gudā́na) ښځ.م. ناوه، پرناله.

**گودر** (gudár) نر.م. (ج. گودرونه، گودرې) ۱) له سیند نه د پورې وتو لاره؛ ۲) د سیند، چینې، کاریز یا څاه هغه ځای چې ښځې ترې اوبه راوړي؛ ۳) لاره، رو.

**گودره** (gudára) ښځ.م. لاړې، برگه، ډاگه، دستک.

**گوډړ** (gudáṛ) نر.م. ۱) تهوکی، رخت، زړه توټه؛ ۲) ص. نر.م. زوړ او بوډا خاروی؛ ۳) زوړ او بېکاره؛ ٤) نر.م. صدف، سیپی؛ ۵) د کاغذ یا توکر توټه، خرڅوری، زړه لته، لیتاړه.

**گوډړوالا** (gudaṛwālā́) فا. نر.م. کباړي، زوړ پلوري، کهنه فروش.

**گوډړه** (gudáṛa) ښځ.م. گاډړه، زړه او ډنگره ښځه.

**گوډړې** (gudaṛə́) ص. ښځ.م.ج. کند، د ملنگانو گنځ، زوړ او پیوندي څادر.

**گوډړی گوډړی** (gudṛáygudṛáy) ص.نر.م. زړې زړې، توټې توټې، میده میده.

**گوده**(۱) (gudá) ښځ.م. ۱) د مال د تړلو کوټه؛ ۲) هغه کوټه چې د اوسېدو وړ نه وي، گاوخونه.

**گوده**(۲) (gwáda) ص. نر.م. گوډ.

**گوډ** (guḍ) نر.م. ۱) اللون، خبشاوه، گوړ؛ ۲) د تار گوټ، د تار غوټه؛ ۳) د نهر یا ویالې د اوبو د خېژولو لپاره د لرگیو او خاشاکو تړل شوی بند.

**گوډا**(۱) (gwaḍā́) ص. نر.م. گوډ، په پښه معیوب، لنگ.

**گوډا**(۲) (guḍā́) نر.م. ۱) گوډی، پتنگ، باد یوه؛ ۲) نانځکه، گوډی، ناوکی؛ ۳) هغه سړی چې د بل په اشاره کار کوي.

**گوډاگی** (guḍāgáy) نر.م. ۱) نانځکه، ناوکی؛ ۲) ص. لاس پوڅی، د بل لاس آله.

**گوډانه** (guḍānā́) ښځ.م. ۱) گوډی؛ ۲) جیب، د تخرگ جیب؛ ۳) یو ډول کڅوړه ده چې د ننه په خیمو کې یې گنډي؛ ۴) السوډچکی، وړوکې بوجی؛ ۵) د مېوو تولولو څادر.

**گوډبانی** (guḍbā́nay) نر.م. پېتواری، هغه نوکر چې د سفر یا ښکار په وخت کې چا سره وي او د هغه د مال و اسباب ساتنه کوي.

**گوډبه** (guḍbá) نر.م. هغه کاریز کنستونکی چې د کاریز پر کوهي باندې کار کوي.

**گوډچکی** (guḍčákay) نر.م. گوډانه، گوډکی، گوډچکه، وړوکی انبان.

**گوډری** (guḍáray) نر.م. د گوډي یا غړکې پښه.

**گوډکی** (gūḍakáy) نر.م. وړوکی گوډی، کوچنی ژی.

**گوډل** (guḍál) نر.م. غوجل، د څارویو تړلو ځای.

**گوډلاسی** (gwaḍlā́say) نر.م. معذوره، یو لاسی.

**گوډمار** (guḍmā́r) فا نر.م. گوړکوونکی، گوډیمار، للون والا.

**گوډوالی** (gwaḍwā́lay) نر.م. گوډتوب.

**گوډول** (guḍawál) مص. مت. د کروندې ځمکه په رمبي یا تېسکورې نرمول، فصل صفا کول.

**گوډوی** (gwaḍwáy) نر.م. گډوي، گډوه، د شرابو لوښی.

**گوډه** (guḍá) ښځ.م. ۱) گونتیه، په ادب کېناستنه؛ ۲) ځیر کېدنه، متوجه کېدنه.

**گوډه بلی** (guḍabálay) نر.م. موش پرانگ، نولی، خرپانډی، خرپانډی.

**گوډی**(۱) (gū́ḍay) نر.م. ۱) هغه څرمنې شی چې دانې، غوزې او نور پکې اچوي؛ ۲) د غړکې لاستی؛ ۳) د جوارو شېښتی.

**گوډی**(۲) (gwaḍáy) ص. نر.م. ۱) گوډ، په یوه پښه گوډه؛ ۲) د څارویو یوه ناروغي؛ ۳) د جوارو بوټي یو ډول چینجی؛ ۴) د بوسوخوسی. ډډ.

**گوډی**(۳) (góḍay) نر.م. د للون، خښتاوې یا گوړ کوچنی لور.

**گوډي** (goḍí) ښځ.م. گوډیگر، خښتاوه کوونکی.

**گوډیاري** (gūḍyārí) نر.ج. د غړکې څلور لاستې چې پر هغو سره په خرک کې ځوړندېږي.

**گوډیاری** (goḍyāráy) ښځ.م. چاگله، د اوبو ورکوټې ژی، مشکوله.

**گوډیال** (guḍyā́l) نر.م. د بوټو ایستلو تېسکوره.

**گوډی چرگ** (gwaḍayčárg) نر.م. ملاچرگک، هُدهُد.

**گوډی خادمی** (guḍayxādámay) ښځ.م. یو ډول سمساره، د سمسارې په څېر یوه خزنده.

**گوډیکه** (gūḍyáka) ښځ.م. ۱) وړوکی گوډی؛ ۲) ډانگوره، د گوډو شلو ډانگوری؛ ۳) د تار رېښلو د څرخې پایه.

**گوډېدل** (gwaḍedə́l) مص. ل. گوډ کېدل، په پښه معیوبېدل.

**گوډیکه**(۱) (gwaḍyáka) ښځ.م. د گوډانو د تخرگ لرگی.

**گوډیکه**(۲) (gūḍiká) ښځ.م. ۱) وړوکې ناوه کی؛ ۲) د سپنسیو د تاوولو پایه.

**گوډیه** (gūḍyá) ښځ.م. د تروواشرومبو د غړکې د لاستې د تړلو تسمه.

**گور**(۱) (gūr) نر.م. ۱) گڼ، د ک او خپورور، د ب دوب؛ ۲) گورم، پاده.

**گور**(۲) (gor) نر.م. ۱) مړیستون، قبر، مزار؛ ۲) اور لمانځونکی، گبر؛ ۳) ص.نر.م. برابر، سیال، ثاني، جوړه، ساري.

**گوراڅه** (goráca) نر.م. گډړی، کند، گنغ، گوراڅه، هغه لباس چې ډېر پیوندونه ولري.

**گوراډی** (gurāḍáy) ښځ.م. ناولې، بدشکله، پوواړه، پوهاړه.

**گوراری** (gurā́ray) نر.م. غرغر کونه، گورېدنه، قهر، غوسه.

**گوراگور** (gorāgór) ص.نر.م. تېز، توند، چټک.

**گوربت** (gorbát) نر.م. (ج. گوربتان) عقاب، شاهین.

**گوربتگوټی** (gorbatgóṭay) ص.نر.م. د گوربت بچی، د عقاب بچی.

**گوربتوزمه** (gorbatwázma) ص.نر.م. د گوربت غوندې، د گوربت په څېر.

**گوربته** (gorbatá) ښځ.م. عقابه، شاهینه.

**گوربند** (gorbánd) نر.م. د اوښ یا غوایي پېش بند.

**گورت** (gwrát) نر.م. ۱) د گوتو ترمنځ فاصله؛ ۲) د مسواکي او گتې گوتې ترمنځ واټن.

**گورتوب**(۱) (gurtób) نر.م. گوروالی، گڼ توب، گڼوالی، گورتیا.

**گورتوب**(۲) (gortób) نر.م. مقابله، همسري، مساوي توب، گورتیا.

**گورتی** (gwaratáy) نر.م. هغه شی چې د شهادت او غټې گوتې ترمنځ ځای نیسي.

**گورټی** (gurṭáy) نر.م. گوتسه، گوتمی، گرټی.

**گورجه** (gūrjá) ښځ.م. سره آلوچه.

**گورجی** (gūrjáy) ښځ.م.ج. یو ډول پښتواني ښځینه پڼې.

**گورجی سپی** (gūjay spáy) ص.نر.م. یو ډول ښکاري سپی.

**گورڅه** (gūrcá) ښځ.م. (ج. گورڅې) باړخو، غمبوری، اننگی، غومبوری، بغون، لغون.

**گورخر** (goraxár) نر.م. گوراخر، گورزی، غیره، غېږه، یو ځنگلي خر چې غوښه یې حلاله ده.

**گورزی** (gorzáy) نر.م. ۱) هغه کوچنی چې په قبرکې له مړي موره پیدا شي؛ ۲) گورخر.

**گورستان** (gorıstā́n) نر.م. قبرستان، هدیره، مقبره، د مړو ښخولو ځای.

**گورسنگ** (gawarsáng) نر.م. یو ډول توره کلکه تېږه ده چې د ژرندې میل وربانديې څرخي.

**گورک** (gorák) نر.م. گوارچي، گواره ساتونکی.

**گورکښ** (gorkáṣ) نر.م. قبرکنستونکی، قبرکن.

**گورکښه** (gorkáṣa) ښځ.م. گورگټې، بغسه، غسه، یو حیوان دی چې مړي له قبر نه وباسي.

**گورکن** (gorkán) ص.نر.م. و گ. گورکښ.

**گورگابی** (gūrgábay) نر.م. یو ډول ژور بوټ.

**گورگټې** (gorgaṭáy) ښځ.م. و گ. گورکښه.

**گورگرندی** (gorgránday) نر.م. قبرکن، هغه څوک چې قبر کنستل یې کسب وي.

**گورگور** (gúrgur) نر.م. غرغر، گورېدنه، گرومېده، له قهر نه گورېدنه یا غرېدنه.

**گورگوره** (gwargū́ra) ښځ.م. یوه غرنۍ اغزنه ونه ده چې توري وړې خوږې دانې لري.

**گورلټې** (gorlaṭáy) ښځ.م.ج. گورکښ، غسی، هغه حیوان چې گور لټوي او مړي ترې راباسي.

**گورلڅ** (gūrlác) ص.نر.م. تندرست، چاغ، سور و سپین، غټ پټ.

**گورم** (gūrám) نر.م. ۱)پاده، گله؛ ۲)لسویه ډله، لوی جمعیت.

**گورمټ** (gūrmáṭ) نر.م. گرمټ، سوک، موک، گورموټ.

**گورمکی** (gūrmakáy) ښځ.م.ج. یو ډول چرګه، بستکی چرګه.

**گورمل** (gūrmál) مص.مت. ۱)سرسري او گونځې گونځې گنډل؛ ۲)ص. نر.م. غوسه ناک، بړچن، بروس، غورځنګ کوونکی.

**گورملتوب** (gūrmaltób) نر.م. بړوس والی، کاړساوی، گروت والی، خپگان، غوسه، قهر.

**گورموغ** (gurmuǰ) ص.نر.م. غصه ناک، قهرجن.

**گورموز** (gurmūz) ص.نر.م. و.گ. گورموغ.

**گورنده** (gūránda) ښځ.م. کوندغال، کندغالي، کنده، ډوغل.

**گورنډ** (goránḍ) نر.م. تنګ تروش، تیاره کور، زوړ ژور قبر.

**گورنډه** (gūránḍa) ښځ.م. ۱)وړوکی او تنګ کور؛ ۲)زوړ قبر؛ ۳)غوجله.

**گورنر** (gawarnár) ص. نر.م. ۱)د یوې صوبې حاکم؛ ۲)ماشین ته د گیس رسولو پرزه.

**گورنگی** (gūrangáy) ص. نر.م. سوررنګ لرونکی آس.

**گورو** (gurū́) نر.م. ۱)پیر، مرشد؛ ۲)د علم و فن استاذ؛ ۳)مج. شریر، مفسد؛ ٤)هوښیار.

**گوروالی** (gūrwā́lay) نر.م. د گوارې ساتلو کار، گله وان، پاده واني، گاهوتوب، شپون توب.

**گوروان** (gūrwā́n) ص. نر.م. پاده وان، گله وان.

**گوروانکه** (gūrwānáka) ښځ.م. شامتوره.

**گورول** (gūrawə́l) مص. مت. ۱)گړنې او گور کول؛ ۲)قهر ورته کول، په غوسه او غضب ورته خبرې کول.

**گوره** (gū́ra) ښځ.م. ۱)هغه لوی سوری یا ډوغل چې د سیند د لارې په غاړه ځمکه کې شوی وي؛ ۲)نر.م. تجارتي نخبه؛ ۳)ښځ.م. سپنځری، سپنخول، د اوسپنې بوره.

**گورهار** (gurhā́r) نر.م. ۱)د زلزلې آواز؛ ۲)په پرله پسې توګه غرومبش کول.

**گوره گل** (guragə́l) نر.م. غوره گل، وچه لنده خټه.

**گورهند** (gūrhánd) نر.م. گورنډه، گورهنډه.

**گورهنډه** (gūrhánḍa) ښځ.م. تنګ و تیاره غار، ډوغل، گورنډه، لویه کنده؛ ۲)مج. قبر.

**گوریيز** (gurayíz) نر.م. یو ډول گلبټي توپک.

**گوري** (gurí) ښځ.م. تکې برګې، په لوبو کې دوکه.

**گوری** (gawráy) ښځ.م.ج. گور، دلده، ورغستلی، ارغستي، ارغستلي.

**گوری** (gūráy) نر.م. گوره، د اوسپنې میده گي، وسپنځرې.

**گوریجن** (gūrején) فا.نر.م. دوکه باز، چلي.

**گورېدل** (gūredə́l) مص.ل. ۱)گړنې کېدل، گوربدنه؛ ۲)گنېدل، ځان سره گړنې گړنې کول، غړېدل.

**گوري سمسه** (gūrisamsá) ښځ.م. ۱)کوېل، د یو مارغه نوم؛ ۲)تورانی، تارانکه، کویله.

**گوریله** (gūrilá) ښځ.م. گوریلا؛ ۱)گوریلایي، چریکي پوځ؛ ۲)دشادو یو ډول.

**گوریمار** (gūrimā́r) نر.م. دوکه باز، چلباز.

**گوری موری** (gūraymū́ray) نر.م. ناڅاپه، نابېره، ناګهان، سمدلاسه.

**گوړ** (gū́ṛ) نر.م. ۱)و.گ. گوره[1]؛ ۲)و.گ. گوډ[1].

**گوړ** (góṛ) نر.م. په گېډه کې د باد آواز.

**گوړا** (guṛā́) ښځ.م. ۱)یوه خره ونه ده؛ ۲)یو ډول ماله ده چې پتې پرې اواروي.

گورابی (gūṛābáy) ښځ.م. ۱) هغه اوبه چې له يو سوري نه راووځي او د څړوبي شکل جوړوي؛ ۲) د کوچنيانو يو ډول لوبه ده.

گوراخر (goṛāxár) نر.م. اوښغويی، گورخر.

گوراکو (gūṛākū́) نر.م. ۱) د غومبسو ځاله، د مچيو ځاله؛ ۲) يو ډول خوږ تماکو.

گوربانی (gūṛbā́nay) نر.م. ۱) توښه، توشه، ځوری، بانی؛ زادراه؛ ۲) ص. توښه وړونکی.

گورباهی (gūṛbā́hay) نر.م. و.گ. گورابی.

گوربی (gūṛbáy) نر.م. گړوبی، گرداو، چورلندی، خارخوری، څرخاو، گرځنی.

گوردانې (gūṛdā́nê) نر.ج. د غنمو وريته چې گوزه ورسره گډه وي.

گوردم (gwaṛdám) نر.م. غټ چارتراش.

گورکه (guṛká) ښځ.م. د تارو کلوله.

گورماچ (gūṛmā́č) نر.م. تاو شوې کولمه.

گورمار (gwaṛmā́r) فا.نر.م. گورپېز، گورساز، گوري، هغه چې گوره پخوي.

گورمکی (gūṛmakáy) ښځ.م.ج. يو ډول چرگه ده.

گورنج(۱) (guṛánj) نر.م. غولغولی، چورلندی، گرداب، زغومی.

گورنج(۱) (gwaṛanj) نر.م. سون، وروورو غبر، پسېدل، غلي څه ويل.

گورو (guṛū́) نر.م. ډېر خوږ، ډېر ښه سړی.

گوروبی (goṛūbáy) نر.م. ۱) د گورې شربت؛ ۲) ډېر خوږ شی.

گوره(۱) (gwaṛá) ښځ.م. د گني د شربت نه جوړه شوې خوږه ماده.

گوره(۲) (guṛá) ښځ.م. تانگه.

گورکی (gwaṛakáy) ښځ.م. د گورگورې په څېر د يوې غرنۍ ونې مېوه.

گوري (goṛí) ص.نر.م. گورپېز، گورساز، په گانې کې د گورې پخولو ماهر سړی.

گوړی (gūṛáy) ښځ.م ۱) مالوچ، پاغونده؛ ۲) د تارو کلوله؛ ۳) د جوارو پولی؛ ٤) د ونې يا نباتاتو شوده؛ ٥) د څوز د گل خوږه ماده ده چې ترنجبين ترې لاس ته راځي؛ ٦) نری ازغی چې د حيوانانو د خوراک وړ وي؛ ۷) يو ډول بوټی دی.

گوړي (gawṛí) ص. نر.م. يو ډول غنم چې غټې او اوږدې دانې او وږی لري.

گوز (gawz) نر.م. ښايست، ښکلا.

گوزار (gozā́r) نر.م. غوزار، درب، ډب، وار.وهل.

گوزارل (gozā́rəl) مص.مت. ۱) ويشتل، غورځول، گزارول؛ ۲) ادا کول، ترسره کول.

گوزارول (guzārawә́l) مص.مت. ۱) غوزارول؛ ۲) ځملول، پرځمکه راويشتل.

گوزاره (guzārá) ښځ.م ۱) وخت تېرونه، وخت اړونه، ساعت تېرونه؛ ۲) مج. زغم، حوصله.

گوزاري (gozārí) نر.م. ټيک، د غوز يا بلورو په لوبه کې غټ غوز.

گوزارېدل (guzāredә́l) مص.ل. غوزارېدل، پرېوتل، ارتاوېدل.

گوزاريز (guzārī́z) نر.م. گوزاروالا، ضربې والا، ضربتي.

گوزران (guzrā́n) نر.م. و.گ. گوزاره.

گوزلېکه (gozléka) ښځ.م. ديو شي ډېره لږه برخه.

گوزموز (gozmū́z) ص. نر.م. ۱) الړې خبرې کوونکی؛ ۲) گوزموزی، غلی پلی.

گوزڼ (guzáṇ) نر.م. رپ ربی، گوزنډ، فالج، د بدن د لړزېدو يا رچېدو مرض.

گوزڼ وهلی (gozaṇwahálay) فا.نر.م. گوزنډ وهلی، د فالج په مرض اخته.

**گوږوی** (gūẓwáy) نر.م. قلبه يي، د قلبي غوايي.
**گوږی** (gūẓáy) ښځ.م. تاو شوې سنې.
**گوسره** (gosrá) ښځ.م. مضبوطه او سخته څپېره.
**گوسندل** (gūsandә́l) مص. مت. ۱) ناگومانه کول، غافلول؛ ۲) ځان ناگاره کول، گوسنډل.
**گوسنه** (gusә́na) ښځ.م. گوسڼ، گوسره، يو ډول غټ او پنډ مار.
**گوسه** (gawsá) ښځ.م. ۱) سنگره، کرکنډه، غټ کاڼی؛ ۲) يو ډول غرني سابه دي.
**گوسه** (gosá) ښځ.م. ټېله، ډيکه، ديکه، ټېل وهل، پورې وهل.
**گوسی** (gusә́y) نر.ج. يو ډول غرني سابه دي.
**گوش** (goš) نر.م. ۱) يو ډول توره او غوړه گياه ده؛ ۲) د جنگ جگړې فيصله، روغه جوړه.
**گوشاړ** (gošā́r) نر.م. صحرانی غوايی يا غوايه.
**گوشپال** (gošpā́l) نر.م. د ميږې مار، يو ډول خطرناک صحرايي مار.
**گوش خوره** (gušxorá) ښځ.م. د نوکانو د لاندېني پوستکي پورته کېده، د اوريو غوښه خوړل کېده.
**گوشواره** (gošwārá) ښځ.م. (ج. گوشوارې) د حساب کتاب لنډيز، ميزان، ټوټل.
**گوشي** (goší) ښځ. نر.م. د رمو څارويو محصول.
**گوښواله** (goṣwā́la) ښځ.م. گوښه والی، ځانله والی، تجريد، انزوا.
**گوښه** (goṣá) ښځ.م. ۱) گوټ، کونج، کنج، کناره؛ ۲) خلوت، يوازې؛ ۳) کوټه، حجره، خونه.
**گوښه ناست** (goṣánā́st) ص. نر.م. په گوټ کې ناست، گوټ ناستی، ځانله ناست.
**گوښی** (gū́ṣay) ص. نر.م. يوازې، تنها، ځانله.
**گوښيځ** (goṣíǰ) نر.م. ۱) تاخچه، تاقچه، تاق؛ ۲) محراب، مهراب، تاخوری.

**گوښېدل** (gūṣedә́l) مص.ل. گوښی کېدل، يوازې کېدل، يوازېتوب، ځانله پاتې کېدل.
**گوښېدلی** (gūṣedә́lay) نر.م. له دين نه گرځېدلی، مرتد شوی.
**گوښی گوښی** (gū́ṣaygū́ṣay) ص. نر.م. ځانله ځانله، تنها تنها، يوازې يوازې.
**گوگ**[۱] (gog) ص. نر.م. ۱) هغه څه چې منځ يې تش وي، ډډ، کاواک؛ ۲) بې وقوف، کم عقل، شوده؛ ۳) نر.م. غړاسپی، غړسپی؛ ٤) تشی، د انسان او حيوان د پښتۍ او ډډوډي ترمنځ برخه.
**گوگا** (gogā́) ښځ.م. شور وځوږ، شور غوغا، ژړا انگولا.
**گوگار** (gugā́r) نر.م. لويه سپينته، لويه ببړۍ.
**گوگری** (gugrā́y) نر.م. له مشکنو، مريو، مرجانو يا سپينو زرو نه جوړ شوی گل دی چې ښځې يې پر تندو ځوړندوي.
**گوگړ** (gogә́r) نر.م. ۱) اورلگيت، گوگرد؛ ۲) يو ډول غرنی گل دی چې غرنی زنبق يې هم بولي.
**گوگړسازي** (gogarsāzí) ښځ.م. د گوگړو کارخونه، د اورلگيتو فابريکه، د اورلگيتو کارخانه.
**گوگړغر** (gogarğár) نر.م. آتفشان غر، هغه غر چې چوي او اور پرې لگي.
**گوگړه** (gográ) ص. گينگړی، وريته شوي يا نيني شوي نخود يا چڼې.
**گوگړی** (gogrә́y) ښځ.م.ج. پاختکه، کوړکوړی، کوړکوړکه، گوگوشتکه.
**گوگل**[۱] (gogә́l) نر.م. ۱) د زړه صندوق، د زړه خونه، د سينې قفس؛ ۲) د سينې تر ټټر د ننه ځيزونه لکه زړه، ينه، توری، سږي او...
**گوگل**[۲] (gugә́l) مص. مت. په منځ کې تشول، گوگول، ډډول.

**گوگلی** (gogláy) نر.م. د بسترو اېښودلو يو ځای چې دوه د بوالونه لري او سر يې پوښ وي.

**گوگو** (gogó) ص. نر.م. ۱) احمق، کم عقل، ساده؛ ۲) نر.م. د خطري چيغه يا غږ، آلارم، ټلي.

**گوگوالی** (gogwā́lay) نر.م. ډډوالی، ډډتيا، تش والی.

**گوگوشتکه** (gogoštáka) ښځ.م. گوگوشتو، پاختکه، کوړکوړی، ببوغه، بابوغی.

**گوگوشتو** (gūgūštū́) ښځ.م. ۱) بغدادی کوتره، يو ډول غټه پاختکه ده؛ ۲) ص. کم عقل، ساده، ناپوه.

**گوگول** (gogawə́l) مص. مت. د يو شي منځ تشول يا خالي کول.

**گوگی** (gogáy) نر.م. و گ. گوگلی.

**گوگېدل** (gogedə́l) مص. ل. په منځ کې تشېدل، ډډېدل، خالي کېدل.

**گوگېل** (gogél) نر.م. گوگل، سترغلی.

**گول** (gol) نر.م. ۱) ساده، کم عقل؛ ۲) فريب، مکر؛ ۳) ص. حيران، پرېشان؛ ٤) ځار، قربان، نثار؛ ٥) په غوبل کې هغه غوايي چې پر خپل ځای ولاړ او نور غوايان ترې چاپېره گرځي؛ ٦) غونډ، غوبلرگی، گرد؛ ۷) تاوراتاو؛ ۸) د لوبو په ډگر کې هغه ځای چې د لوبو د گټلو لپاره غوره شوی وي؛ ۹) گډ، خلط.

**گولر** (golár) نر.م. يو ډول انځر چې مېوه يې پښکه وي، ځنگلي انځر.

**گولگن** (golagán) نر.م. يو ډول وابښه دي چې سپين گل کوي او اوږد ډنډر باسي.

**گولگوله** (gulgulá) ښځ.م. ۱) پکوړه؛ ۲) خگينه.

**گول مال** (golmā́l) ص. نر.م. ۱) گډ، يو ځای؛ ۲) شکمن؛ ۳) نر.م. سازش؛ ٤) غبن، خيانت.

**گولول** (golawə́l) مص. مت ۱) حيرانول، پرېشانول؛ ۲) ويلې کول؛ ۳) ځارول، قربانول؛ ٤) گردول، غونډول؛ ٥) تاوراتاو کول؛ ٦) فتنه راپاڅول.

**گوله** (golá) ښځ.م. ۱) کپ، نمړی، قپ؛ ۲) روزي، رزق؛ ۳) گرده درنه سکه؛ ٤) د توپ گلوله؛ ٥) ص. نر.م. ناپوه، کم عقله، شوده.

**گوله انداز** (golaandā́z) ص. فا. نر.م. گلوله ويشتونکی، توپچي.

**گوله بارود** (golabarū́d) نر.م. گولۍ او باروت، وسله، مېخزين.

**گولۍ** (goláy) ښځ.م.ج. ۱) د ټوپک گلوله، مردکی؛ ۲) ټابليټ، د دوا گولۍ؛ ۳) کلوله؛ ٤) شوتی.

**گولي پنج** (gūlipánj) نر.م. چنگاښ، پنجه پړاو.

**گوليدار** (golidā́r) نر.م. هغه ټوپک چې د چرو پرځای په کې مردکي يا گولۍ استعمالېږي.

**گولېدل** (goledə́l) مص. ل. ۱) فتنه را اوچتېدل؛ ۲) پرېشانېدل؛ ۳) ويلې کېدل؛ ٤) ځارېدل؛ ٥) غونډی کېدل؛ ٦) پېچيده کېدل.

**گوما** (gumā́) ښځ.م. يو ډول هوسی ده.

**گومارل** (gumārə́l) مص. مت. مامورول، موظفول، دنده ورسپارل، مقررول، استخداموال.

**گومارلی** (gumārə́lay) نر.م. موظف کړی، مقرر کړی، استخدام کړی.

**گومارنه** (gumārə́na) ښځ.م. مامورونه، مقررونه، استخدامونه.

**گوماگی** (gumāgáy) نر.م. ۱) يو ډول هوسی ده؛ ۲) خبره، هغه خبره چې په کرونده کې يې د حيواناتو او مرغانو د وېرولو لپاره دروي.

**گومامل‌ۍ** (gūmāmlə́y) ښځ.م. يو ډول نبات دی هلم، چې تخم يې د ملنگان په څېر تور وي.

**گومان** (gomā́n) نر.م. ۱) یقین، خیال؛ ۲) قیاس، اټکل؛ ۳) شک، شبهه؛ ٤) وهم.

**گومانډو** (gūmānḍū́) نر.م. گومانډی، یو ډول مرغهری یا ستوری.

**گوماني** (gūmānī́) ص. ۱) شکي؛ ۲) یقیني؛ ۲) مج. حتمي.

**گومباټه** (gūmbāṭá) ښځ.م. قبا، تاخ، محراب.

**گومبته** (gūmbáta) ښځ.م. (ج. گومبتې) گمبته، گومبزه، گومبده.

**گومبزه** (gūmbáza) ښځ.م. و ګ. گومبته.

**گومبوری** (gūmbū́ray) نر.م. غومبوری، غمبوری، اننگی، رخسار.

**گومبۍ** (gūmbáy) ښځ.م.ج ۱) کبۍ، قبه، گومبدي ډوله ورو کی او گردی شی؛ ۲) د بکیانۍ، بوکانۍ دانه.

**گومل** (gomál) نر.م. د پلار د مال و جایداد له میراث څخه کنایه ده.

**گومنځی** (gūmanʒáy) نر.م. یو ډول سارانی نبات دی چې د کرکي قلمونه ورنه جوړوي.

**گومنډ** (gūmánḍ) نر.م. غولی، غوچاری، د اوبو ژور ځای.

**گومه** (gūmá) ښځ.م. ۱) وېره، خوف، اندېښنه، ببره؛ ۲) گومان، شک.

**گومی** (gomáy) نر.م. ۱) شک، گومان؛ ۲) وېرې اخیستی، ډار اخیستی.

**گون** (gūn) اد. ۱) نسبتي کلیمه ده چې د اعدادو په پای کې د عدد نسبت ښکاره کوي - لسگون؛ ۲) نر.م. په ښاروبو د باروړلو بوری یا ځولۍ؛ ۳) پلوڅه، د پلوڅې ونه؛ ٤) سرېښ، لامده سرېښ.

**گونټ** (gonṭ) نر.م. گوډ، گوټ، د تار گونجی چې د کاغذ له نېچې نه تاو شوی وي.

**گونڼه** (góṇja) ښځ.م. د شطرنج دانه، گوټ.

**گونجلک** (gūnjlák) نر.م. گونځې، گنجلک، تاوراتاو، غنجلک، چملک.

**گونجنی** (gūnjanáy) نر.م. چنې، د لوبښو کودو د اېښودلو ځای.

**گونجه** (gūnjá) ښځ.م. گونځه، گونجتوب، چملکي.

**گونجی** (gūnjáy) ښځ.ج. گنجی، د تارونو گولی، څرخی یا اټېران چې تارونه پرې خېږي.

**گونځه** (gūnʒa) ښځ.م. و ګ. گونجه.

**گونځې** (gunʒé) ښځ.ج (م. گونځه) و ګ. گونجه.

**گوند**[1] (gwand) نر.م. گوندری؛ ۱) حزب، ډله، گروپ؛ ۲) پره، جمبه.

**گوند**[2] (gond) ص. نر.م. برابر، یو هومره.

**گوند**[3] (gūnd) نر.م. ج. گنډ. کنډ، کنډوری.

**گوندری گوندری** (gundráygundráy) ص. ډله ډله، گروپ گروپ.

**گونده** (gū́nda) ښځ.م. ۱) و ګ. غوندی؛ ۲) ص. نر.م. پوخ و تجربه کار سړی؛ ۲) مج. ناولی؛ ۳) گوندیمار، ملگری، د جنبې اندیوال.

**گوندی** (gū́nday) نر.م. و ګ. غوندی.

**گوندي** (gūndí) ښځ.م. ۱) پارټي بازي، ډله بازي، گوندیماري؛ ۲) تربگني، دښمني، میرځي، سیالي.

**گونديې** (gondé) اد. و ګ. گنې، کوندې، گواکې.

**گوندی کور** (gūndaykwár) نر.م. ځنگلي کور، ځنگلي انگور، تور انگور.

**گوندیمار** (gūndimā́r) ص. نر.م. پرې جنبې والا، حزبي ملگرتوب، پارټي باز، ډلې والا، ملگرتیا والا.

**گونډېتوب** (gondetób) نر.م. یو شان والی، ورته والی، همرنگي، هم شکلي.

**گونډ** (gonḍ) نر.م. گرداب، چورلنډی، اوبګرځنی.

**گونډار** (gonḍā́r) نر.م. زېړې شوملې، لاونډ.

**گونډه**(۱) (gonḍá) ښځ.م. ۱) د راغبرګې کړې پښې زنګون؛ ۲) د حیوان د بار یو اړخ، انډی.

**گونډه**(۲) (gūnḍá) ښځ.م. یو ډول نبات دی.

**گونډی**(۱) (gūnḍáy) نر.م. د غوبل نه وروسته د غنمو هغه وړی چې پوره غوبل شوي نه وي.

**گونډی**(۲) (gonḍáy) نر.م. د اوښ زنګون بند، یو پړی دی چې د اوښ زنګون پرې تړي.

**گونډېل** (gonḍél) نر.م. د مست اوښ د دواړو گونډو غاړې سره د تړلو طریقه.

**گونډیمال** (gūnḍimā́l) نر.م. گنډیمال، د گونډي دویم ځل غوبل کول.

**گونړ** (gūnáṛ) نر.م. یو نبات دی چې خوړل کېږي.

**گونګ** (gwang) ص. نر.م. گونګی، گونګا، له څه ویلو او خبرو کولو بې برخې، گونګو.

**گونګټ** (gungáṭ) نر.م. مرغتهانه، غوزاړی، خزدکه؛ ۱) یو تور رنګ خزنده ده؛ ۲) ص. تک تور و چالاک لنډی سړی.

**گونګټۍ** (gungaṭáy) ښځ.م.ج. یوه سور رنګې وړه حشره ده چې د سبزیو پاڼې خوري.

**گونګرو** (gūngrū́) نر.م. جرس، گنګرو، د سپینو زرو جړنګانی یا شرنګانی.

**گونګري** (gūngrí) نر.ج. واړه واړه جرسونه چې د څارویو په غاړه کې یا ډمې یې پښو ته د شرنګاري لپاره اچوي.

**گونګرۍ** (gūngráy) ښځ.م. پایزېب، پایله.

**گونګړ** (gūngáṛ) ص. نر.م. ۱) شادیوان، اجړ؛ ۲) یو غرنی قوم چې مال ډنګر ساتي.

**گونګړی** (gūngaṛáy) ص.نر.م. ۱) و ګ. گونګ؛ ۲) تتله، نښت ژبی، چاړا؛ ۳) د گونګړي مفرد.

**گونګړي** (gūngṛí) نر.ج. چولې، تومبولی، د چنو، جوارو یا نورو حبوباتو ایشولې شوې دانې، شورنخود.

**گونګړی** (gūngṛáy) ص.نر.م. گانګوړی، تړتړی، نښت ژبی.

**گونګړي والا** (gūngṛiwālā́) ص.نر.م. گونګړي خرڅوونکی، چولې والا.

**گونګ سونګ** (gúngsūng) ص. ۱) گم سم، کوڼ و چاړا؛ ۲) ببخي غلی او چوپ.

**گونګڼی** (gūngṇáy) نر.ج. و ګ. گونګړي.

**گونګو** (gungū́) نر.م. ۱) گنګو، زعفران؛ ۲) یو ډول بوټی دی؛ ۳) و ګ. گونګ.

**گونګوالی** (gungwā́lay) نر.م. ۱) خبرې نه کول، د خبرو توان نه لرل؛ ۲) ابهام، پټوالی.

**گونګور** (gungū́r) نر.م. یو غرنی بوټی دی چې زېړ رنګ ورنه جوړېږي.

**گونګوری** (gungū́ray) نر.م. د انګورو واښکی.

**گونګوړه** (gungū́ṛa) ښځ.م. و ګ. گانګوړه.

**گونګوړۍ** (gungū́ṛáy) ښځ.م.ج. و ګ. گانګوړی.

**گونګوسه** (gungusá) ښځ.م. و ګ. گنګوسه.

**گونګوماښام** (gúngūmāṣā́m) نر.م. تیاره ماښام، و ګ. گنګوماښام.

**گونګه** (gūngá) ښځ.م. یو بوټی دی چې د سترګو د ناروغیو لپاره یې لوګی کوي.

**گونګه روږه** (gūngaružá) ښځ.م. چوپه چوپتیا، قراره قراره، بشپړه چوپتیا، غلي غلیا.

**گونګی** (gūngáy) نر.م ۱) بوم، یو سپېره مارغه دی؛ ۲) و ګ. گونګ؛ ۲) د انګورو واښکی؛ ۳) چاړا.

**گونګېدل** (gūngedә́l) مص. ل. گونګ کېدل، گونګی کېدل، چې خبرې نه شي کولای.

گونه (gūná) ښځ.م. څېره، رنګ، بڼه، جوسه.
گونه زېر (gūnazẽr) ص. نر.م. زېر مخی، زېړا، زېربورق، زېر غوړي.
گوني (gūnáy) ښځ.م.ج. ۱) بوري، بوجۍ؛ ۲) لوی جوال، گوندی، گونۍ.
گونې (gūné) ښځ.م. گونیه، د تار غوندې شنه څرمن چې د پښو په پسکیو کې یې د ... ل لپاره گندي.
گونیا (gūnyā́) ښځ.م. ۱) گونیا، د ښځگرو د لرگي یوه آله چې د دیوال کوږوالی پرې معلومـوي؛ ۲) د گوټي هغه ځای چې غمی په کې کېښودل کېږي؛ ٤) یو درې څنډیزه هندسي آله.
گوڼ (gūṇ) نر.م. ۱) گونه، څېره، بڼه؛ ۲) و گ. بوڼ؛ ۳) و گ. گـونی؛ ٤) په پوزه کې بنگېدل، بنگ بنگ کول.
گوڼس (gūṇás) ص. نـر.م. گـوزموزی، هغه چې د زړه حال چاته نه وایي.
گوڼه (gūṇá) ښځ.م. د جلال الدین اکبر پاچـا د زماني یوه سکه.
گوڼی (gūṇay) نر.م. د حبوباتو یوه وړه سپېره.
گوڼی (gūnáy) ښځ.م.ج. گاونه.
گوڼېدل (gūṇedə́l) مص. ل. گـوڼاري کـول، گوڼ گوڼ کول، غلي غلي خبرې کول، پسېدل، بنگېدل.
گوواته (gūwāṭá) ښځ.م. گوواته، د غـوایو گوهاته، د ښپیا کوډېری، گواته.
گووار (gūwā́r) نر.م. گوهار، د غوایانو پاده.
گوهر (gawhár) نـر.م. گـهر، جوهر؛ ۱) مرغلره، ملغلره، یو قیمتي کاڼی؛ ۲) اصل، نژاد، بېخ.
گوهري (gawharí) ص.نر.م ۱) گوهر خرڅوونکی، گوهر والا؛ ۲) د گوهرو په څېر.
گوی[1] (goy) نـر.م. ۱) بلد، سره، هغه غـوایی چې په بیوې کې بلد وي؛ ۲) د ژرندې غـټ لـرگی؛ ۳) پندوس، پندوسکه.
گوی[2] (gáway) ... م. د غره غاښې، وړوکی کوتل، کنډو.
گویا (goyā́) ق. ... لکه چې، غوندې، مثل، ته به وایې؛ ۲) ... ږي، بالفرض؛ ۳) ص. خبـرې کوونکی، ... نکی، ښه تقریر کوونکی.
گویایي (gōyāyí) ښځ.م. جرارتیا، د وینا طاقت، د خبرو کولو ... ت.
گوېر (gawír) نر... د غوایانو پاده.
گوېږ (gawéẓ) نر... پوښتنه، گروېږنه، تپوس.
گوېږل (gawezə́l) ... ص. مت. گېږل؛ ۱) لټول، پوښتنه کول، معلو... ل؛ ۲) د چا خبر اخیستل.
گویک (guyák) نر.م. د ښځینه کوښو نعل.
گویول (goyawə́l) مص. مت. جوتې کول، غویی قولبې کولو ته چمتو کول.
گویې (góye) ښځ.ج. کنځاوې، بدې خبرې.
گه (gah) یو وخت، کله.
گهل (gahə́l) مـص. مت. ۱) گـډوډ او بې ترتیبه گنډل، رفو کول؛ ۲) د جوال خوله گنډل.
گهوټي (ghoṭí) ښځ.م. گوټي، د یوه بوټي نوم چې په ... اني درملنه کې کارېږي.
گهور (ga...ŕ) نر.م. ۱) چټل او ناولی؛ ۲) خر او ناړو...
گهه (...ahá) ښځ.م. ۱) بې ترتیبه او گـډوډ گنډل؛ ۲) ... اری، گل کنه.
گهی (...háy) ص.نر.م. ژوبل، ټپي، زخمي، گایل.
گهی (gaháy) ښځ.م. ۱) د جوال سنی؛ ۲) د سامان لپاره وړه کوټه.
گهیځ (gahíj̈) نر.م. سبا، سحر، سهار.
گهیځ ښه (gahij̈ṣá) ق. گهیځ دې ښه، سهار دې ښه، سهار په خیر.

**گهيځ مهال** (gahiǰmahā́l) نر.م. سهار مهال، د گهيځ پر وخت، بامدادان.

**گهيځنۍ** (gahiǰanə́y) ښځ.م. سهارنۍ، سباناری، بربڅري،

**گهيځ نېکمرغه** (gahiǰnekmárǧa) ق. و گ. گهيځ ښه.

**گې** (ge) د پښتو الفبې د (ږ) توري تلفظ يا غږ.

**گی** (gay) اد. د تصغير نښه ده، لکه بالښت گی.

**گيا** (gayā́) ښځ.م.ج. واښه، د څارويو لپاره واښه.

**گياچو** (gyāčū́) نر.م. و گ. گاوچو.

**گياخور** (gayāxór) ص. نر.م. وښور، واښه خور، گيا خوروونکی.

**گياخوري** (gayāxorí) ښځ.م. واښه خوړنه، گيا خوړنه.

**گيان** (gayā́n) نر.م. ۱) علم، پوهه، دانش؛ ۲) عقل؛ ۳) علم الهي، علم ومعرفت.

**گياني** (gayā́ní) ص. نر.م. ۱) عالم، فاضل، پوه، دانا، پوهاند؛ ۲) بزرگ.

**گياو** (gayáw) ص.نر.م. و گ. گهی.

**گېبی** (gebáy) نر.م. يو ډول تنگې پايڅې لروونکی گونځو والا پرتوگ، گونځور پرتوگ.

**گيپ** (gip) نر.م. سمدستي، په ناخبره کې.

**گيت** (git) نر.م. ۱) فرار، تېښته؛ ۲) سندره، نغمه.

**گيتار** (gitā́r) نر.م. د موسيقي يوه آله ده چې په شاباز غږول کېږي.

**گيتره** (gitra) ښځ.م. وره ځولۍ.

**گيتگيتانی** (gitgitā́nay) نر.م. يوه لوبه ده.

**گيت وهل** (gitwahál) نر.م. له يو مجلس نه ځان ويستل.

**گيتۍ** (gitáy) ښځ.م.ج. چره، گولۍ، د بم چره.

**گيتی** (gitáy) نر.م. د تار گونجې، کوکړې، گونټ.

**گېټس** (geṭə́s) نر.م. هغه پټۍ چې پوځيان يې پر عسکري بوټانو له پاسه تړي.

**گيټکۍ** (giṭkə́y) ښځ.م.ج. وړوکې گيټۍ، گټکۍ، وړوکي کاڼي.

**گيټه** (giṭá) ص. نب. د غوسې له امله خواشينی، خپه، غلی.

**گيټۍ** (giṭə́y) ښځ.م. ۱) گيټکۍ، وړوکي غونډې کاڼي؛ ۲) د چلم د تنبې يا سرخانې گردۍ لوټه؛ ۳) د تار کلوله؛ ٤) د پښې ښنگری يا بجلک.

**گېټی** (geṭáy) نر.م. ټيکری.

**گيچ** (gič) ص.نر.م. ۱) گنگس، بېهوښه، بې حاله؛ ۲) د چيني لوښو ماتې ټوټې.

**گيچه** (gičá) ښځ.م. پوتل، پرتل، ځوکل، گيخه، د ځينو شيانو فضله، تفاله.

**گيچۍ** (gičə́y) ښځ.م.ج. ۱) دهډوکي مغز، چغزی، چزغی؛ ۲) پوڅه.

**گيد** (gid) نر.م. نرښځی تپوس، هغه تپوس چې ويل کېږي شپږ مياشتې نر وي او شپږ مياشتې ښځه.

**گيدانه** (gidānā́) ښځ.م. هغه شی چې په اغزو، لتو او رينجو کې پټ وي.

**گيدړ** (gidə́ṛ) نر.م. ۱) شغال، چغال؛ ۲) ص. وېرېدونکی، ډارن، بزدل.

**گيدړ باغ** (gidaṛbā́ǧ) نر.م. و گ. کچماچو.

**گيدړ تيره** (gidaṛtíza) ښځ.م. يو ډول متبرکه تيره ده چې خلک يې په جېبو کې گرځوي.

**گيدړسنگ** (gidaṛsáng) نر.م. و گ. گيدړسينگی.

**گيدړسينگی** (gidaṛsingáy) ښځ.م ۱) گيدړسنگ، يوه کُلکه غوټه چې د گيدړ له تندي نه لاس ته راځي؛ ۲) يو ډول متبرکه تيره.

**گيدړ کور** (gidaṛkór) نر.م. گيدړ باغ، کچماچو، يو ډول خوندور سابه دي.

**گیدړواده** (gidaṛwā́da) نر. م. په شنه آسمان کې د باران وربدنه.

**گیدړۍ** (gidaṛáy) ښځ. م. ۱) د گیدړې په شان چاپلوسي؛ ۲) ځان سره خندل؛ ۳) بلونگړی، یو وړوکی حیوان چې اوږده ویښتان لري.

**گیدو** (gidó) ښځ. م. زړه گیدړه.

**گېدی** (gedáy) ص. نر. م. کم عقل، احمق، نادان.

**گېډبند** (geḍbánd) نر. م. د خره او اوښ تر گېډې لاندې یو پړی دی، چې بار یا وړی ټینگ ساتي.

**گېډبنگ** (geḍbáng) ص. نر. م. گېډو، گېډور، د گېډې مین، ډېر خور.

**گېډبه** (geḍbá) نر. م. ۱) گېډۍ وړونکی، گېډې والا؛ ۲) گېډور، خېټور.

**گېډو** (geḍū́) ص. نر. م. (ج. گېډوان) گېډور، ډېرخور.

**گېډور** (geḍawár) ص. نر. م. ج. خېټور، د لویې گېډې خاوند.

**گېډه** (géḍa) ښځ. م. خېټه.

**گېډۍ** (geḍáy) نر. م. ۱) بار، پن؛ ۲) جنین.

**گېډۍ** (geḍáy) ښځ. م. ۱) د گلو یا بل څیز غونچه، د گلانو گېډۍ یا دلۍ؛ ۲) د غنمو سترۍ.

**گېډۍ کېدل** (geḍaykedə́l) نر. م. ۱) گېډۍ جوړېدل، جوړول؛ ۲) پر دښمن د حملې په صورت کې اتحاد او اتفاق.

**گېر** (ger) نر. م. ۱) حصار، بند؛ ۲) د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**گیرا** (girā́) ص. نر. م. ج. ۱) بلد، روږدی؛ ۲) چالاک.

**گېرچاپېر** (gerčāpér) ق. نر. م. شا وخوا، چاپېر.

**گېروپېر** (gerwpér) نر. م. ۱) و. گ. گېرچاپېر؛ ۲) چال و فریب، دوکه.

**گېرگاډی** (gergā́ḍay) نر. م. گرگاډی.

**گیرگیره** (gírgirá) ښځ. م. دلده.

**گېرگیرۍ** (gergiráy) نر. م ۱) گرگرۍ؛ ۲) د پایې په څېر یوه غونډۍ پرزه؛ ۳) د کوهي څرخ.

**گېرل** (gayrə́l) مص. ل. قې کول، کانگې کول.

**گېرو** (gerū́) نر. م ۱) یو ډول سره خاوره؛ ۲) د دېوال په څنگ کې بل دېوال چې د پردې لپاره جوړېږي.

**گیره** (girá) ښځ. م. ۱) توبره، وړه خولۍ؛ ۲) هغه لرگی چې د بیوې تیر له کونډې سره کلکوي؛ ۳) ص. د جنگ لپاره تکړه کړی شوی مرز.

**گېرۍ** (geráy) نر. م. ۱) د عرابې کړۍ یا حلقه؛ ۲) د کوترې نر؛ ۳) یو ډول سابه.

**گیرۍ** (giráy) ښځ. م. ۱) د جوارو په وړې کې نرۍ پرده؛ ۲) د نوکانو دبېخ د غوښې خوره، مخاله؛ ۳) یو ډول غتبه ونه ده؛ ٤) د قولبې یوه آله.

**گیرې بیرې** (gírebíre) ص. پرې پرې، هغه سترگې چې د کومې ناروغۍ یا صدمې له امله ستورې ستورې غونډې ښکاري.

**گیزارۍ** (gizā́ray) نر. م. راشتلی، گڅارۍ، د غنمو یا جوارو هغه پاتې شونې دانې چې درشې د تللو نه وروسته په درمندځای کې پاتې شي.

**گیږکه** (giẓaka) ښځ. م. عککه، ویږیی، ویگېی، گوبکه، یو اوږده لکۍ لرونکی مرغۍ ده.

**گیس** (gays) نر. م. یو ډول ډبوه یا څراغ.

**گیشکۍ** (giškáy) نر. م. جیزگی، شیزگی، اجغی، د شکونړ د کورنۍ یو حیوان دی.

**گیگړ** (gigáṛ) نر. م. یو غرنی بوټی دی چې سور رنگی گل کوي.

**گېل** (gel) نر. م. رغړېدلی، رغښتی، کولبدلی.

**گېلاس** (gelā́s) نر. م. ۱) د آلو بالو په څېر یوه مېوه ده؛ ۲) د اوبو یا چای چښلو اوږد لوښی.

**گېلټ** (geláṭ) نر. م. ج. یو ډول فلز دی.

**گېلول** (gelawə́l) مص. مت. کولول، رغړول.

**ګيله** (gilá) ښځ.م. شکوه، مانه، شکايت.

**ګېله ګوڅه** (gelágoca) ښځ.م. شکوه شکايت، ګېله مانه، ګيله ګوزاره.

**ګيله ګی** (gilagáy) نر.م. خوسکی، د غوا نرېچی، ګېلګی.

**ګيله مانه** (gilámāná) ښځ.م. (ج. ګيلې مانې) ګېله ګوڅه، شکوه، شکايت.

**ګيله من** (gilamán) ص. نر.م. ګيله مند، هغه چې له يو چا نه ګيله ولري.

**ګېلېده** (geledá) نر.ج. کولېده، رغړېده.

**ګيلې مانې** (gilémāné) ښځ.ج. و.ګ. ګيله مانه.

**ګيم** (gim) نر.م. د سيند د غاړې د اوبو شپله.

**ګين** (gin) نر.م. پندوس، د لوبو توپ.

**ګېنټه** (genṭá) ښځ.م. ۱) د مرغی نيولو د لومو هغه پاتې برخه چې د دام تر غوړولو وروسته پاتې او هغه له آخري موري سره ړدي؛ ۲) د لاس ساعت؛ ۳) ۶۰ دقيقې وخت.

**ګيند** (gind) نر.م. پندوس، ګين، د لوبو توپ.

**ګينده** (gindá) ښځ.م. نګېده، بخی؛ هغه ټکونه چې پر ستن او تار سره ټوټوټه ورکول کېږي.

**ګينډی** (gindáy) نر.م. کرګدن، يو ځناور دی چې تر فيل کوچنی او تر سنډا لوی وي يو ښکر لري او نور ځناور ښکار کوي.

**ګينګری** (gingráy) نر.م. وړوکی ګونګرو.

**ګينګړو** (gingṛó) ښځ.م. د ځنکدن آخري حالت.

**ګينګړی** (gingṛáy) نر.م. وړوکی زنګ، وړوکی ګينګړو.

**ګينی** (ginə́y) ص. بلوري، منيري شينولی.

**ګېڼنی** (geṇánay) نر.م. زيلانځ، رحم، بچه دان.

**ګېڼه** (geṇá) ښځ.م. ګانه، پسول، د ښځو زېور.

**ګېڼۍ** (geṇə́y) ښځ.م. ګېړنۍ.

**ګېڼه بند** (geṇabánd) نر.م د اوبن زنګون بند.

**ګيڼ لوبه** (giṇlóba) ښځ.م. پندوسلوبه، توپ لوبه، توب بازي.

**ګيول** (gayawə́l) مص. مت. و.ګ. ګيل.

**ګيېځ** (gayíź) نر.م. و.ګ. ګهيځ.

**ګيېزل** (gayezə́l) مص. ل. د حال و احوال پوښتنه کېدل.

**ګييل** (gayayə́l) مص. مت، بوڼل، ګيول؛ د بوڼ تار تېرول.

**ګېيونی** (geyū́nay) نر.م. د غوندي ستری، هغه تار چې د غوندي خوله ورباندې ګنډي.

# ل

ل (lām) نر.م. د پښتو الفبې پنځه دېرشم توری دی، ابجدي ارزښت يې (۳۰) دی.

لا (lā) ۱) د عطف توری، ليا، تر اوسه پورې، تر دې وخته، کله؛ ۲) ص. زيات، پرې د پاسه، دويم؛ ۳) نه، يه.

لاابال (lāabāl) ص.نر.م. لاوبال، ۱) بې پروا، بې فکره؛ ۲) رند، شرابي؛ ۳) بې شرمه.

لااقل (lāaqál) ق. کم تر کم، لږ تر لږه.

لاانتها (lāintihā́) ق. هغه شی چې څه حد او آخر يې څرګند نه وي.

لابراتوار (lābrātwā́r) نر.م. (ج. لابراتوارونه) د ازموينې ځای، هغه ځای چې علمي کارونه په کې سرته رسېږي.

لابل پرون (lābalparū́n) نر.م. تر ورمې ورځ د مخه ورځ، له پرون او بل پرون نه وړاندې ورځ، تېره شوې دريمه ورځ.

لا بل سبا (lābəlsabā́) نر.م. سبا نه بل سبا پسې ورځ، راتلونکې دريمه ورځ، لابل ګهيځ.

لابوري (lāborí) ښځ.ج. خوشامندي، غوړه مالي.

لاپک (lāpák) ص.نر.م. لاپو، لاپوک، لاپې والا.

لاپه (lā́pa) ښځ.م. (ج. لاپې) لافه، لاپه شاپه، لاپې، دوزه، ځان ښودنه، د ځان ستاينه.

لاپېږی (lāpeẓáy) ص. نر.م. مړاوی، پژمرده، مړغيچن، مړخين.

لاتري (lā́trí) ښځ.م. پچه، لاټري، خسنۍ.

لاته ورم کال (lātawarə́mkā́l) نر.م. تر ورم کال د مخه کال، پروسږ کال نه هابل کال، درې کاله پخوا.

لاته ورمه شپه (lātawar̥ maṡpá) ښځ.م. تر ورمې شپې د مخه شپه، پرون شپه نه ها بله شپه، درې شپې مخکې شپه.

لاتې لګاتې (lā́telagā́te) ق. خپور ور، شاولې واولې.

**لاټ** (lāṭ) نر.م. ۱) د یو واحد جنس کوټه یا دلی؛ ۲) د هر اوچت عمارت یا ستنه؛ ۳) شغله.

**لاټکی** (lāṭkáy) نر.م. توکه، د جوارو شیتی.

**لاټو** (lāṭū́) نر.م. ۱) چورلندی، چورلکی؛ ۲) د کوکنارو تشه غوزه یا ډوډه؛ ۳) د کوچنیانو د لوبو یوه آله؛ ٤) یوه اوږده لکۍ لرونکی مرغه.

**لاټورل** (lāṭorál) ص. نر.م. ۱) چندی، شاعر، شعر ویونکی؛ ۲) مج. سندرغاړی، سندربول.

**لاټول** (lāṭól) نر.م. پاړکیوال، چندی، شاعر.

**لاټولي** (lāṭolí) ښځ.م. پاړکیوالي، چندیتوب، شاعري.

**لاټی** (lāṭáy) ښځ. م.ج. ۱) کوتک، لوړ، همسا؛ ۲) یوه ونه ده؛ ۲) هغه وړوکی لرگی چې د اوښ په سپږمو کې د مهار د تړلو لپاره اچول کېږي.

**لاټین** (lāṭén) نر.م. الیکین، څراغ، ډیوه، ښیښه یي فانوس.

**لاثاني** (lāsāní) ص. بې ساري، بې مثله، بې نظیره، یکتا.

**لاجرم** (lājarám) نر.م. بې شکه، یقیناً؛ مجبوراً، بالضرور.

**لاجواب** (lājawā́b) ص. نر.م. لاځواب: ۱) غلی، چوپ؛ ۲) مغلوب، عاجز؛ ۳) دروغجن؛ ٤) بې مثله، لاثاني چې جواب یې نه وي.

**لاجورد** (lāj wárd) نر.م. یو ډول آسماني رنگه معدني ځلېدونکی کانی دی.

**لاجوردي** (lāj wardí) ص. د لاجورد په څېر، آسماني یا آبي رنگی.

**لاچار** (lāčā́r) ص. ۱) ناچار؛ ۲) مجبور، بې وسه؛ ۳) محتاج، غریب، بې وسه، نادار.

**لاچکه** (lāčaká) ښځ.م. لاچې، لوچکه، یو ډول سپی چې لړ ویښتان لري.

**لاچی** (lāčáy) نر.م. لاچکه، لوچکه، یو ډول سپی.

**لاحقه** (lāhıqá) ښځ.م. روستاړی، وروسته، په کوم لفظ پسې بله لگېدونکې کلیمه.

**لاخ** (lāx) نر.م. هغه ځای چې یو شی په زیات مقدار کې موجود وي.

**لاداره** (lādā́ra) ښځ.م. د خره یا آس تېزه منډه.

**لادباد** (lā́dbād) نر.م. طاقت، زور، توان.

**لادوا** (lādawā́) ص. بې درملنې، بې دوا، لا علاجه.

**لاډنگ** (lāḍáng) ص. نر.م. ډینگ، لوړ قدی او د بې نظمه اندامونو لرونکی سړی.

**لاډو** (lāḍū́) نر.م. ۱) کم عقل؛ ۲) د کوکنارو تشه غوزه؛ ۳) لاټو؛ ٤) د غره هغه کمر چې کاواک او رابېل شوی وي؛ ٥) نازدانه؛ ٦) ناوې.

**لاډوری** (lāḍūráy) نر.م. غندلی، یو ډول سابه.

**لاډوډنگه** (lāḍoḍánga) نر.م. تورمخی، هغه هلک چې مخ تور کړي او نقلي ږیره او ځانگړې جامې ورته په غاړه کړي او په کوڅو کې د باران کېدو په پار د خیرات راغونډولو لپاره گرځوي.

**لاډونی** (lāḍū́nay) نر.م. غټ او گرد لرگی.

**لاډېرگړی** (lādergáray) نر.ج. د ډېرگړي ډېر گړی، جمع الجمع.

**لاډیز** (lāḍíz) ص. نر.م. آواره، خوشې تشې.

**لار** (lār) ښځ.م. ۱) لاره، لیاره، لیار، د تگ ځای؛ ۲) قاعده، طریقه، روش؛ ۳) اصول، اسلوب، قانون.

**لاراواری** (lārāwā́ray) نر.م. لارهواری، لاره اوارونه، لاربرابرونه، زمینه سازي.

**لاربه** (lārbá) ص. لاربنود، لاربنودونکی، رهنما.

**لارد** (lārd) نر.م. قطعي، یقیني.

**لارډ** (lārḍ) ص. نر.م. ۱) خدای، رب؛ ۲) مالک؛ ۳) خاوند؛ ٤) سید، پیر؛ ٥) خان، ملک.

**لارساتی** (lārsā́tay) ص.نر.م. لارساتونکی، د لارې څارندوی، د لارې محافظ.

**لارشوکی** (lāršū́kay) ص. نر.م. شوکمار؛ لارشوکوونکی، لاروهونکی، قطاع الطریق.

**لارښود** (lārṣód) ص. نر.م. لاربه، لارښوونکی، لارښودونکی، رهنما.

**لارښودل** (lārṣodә́l) مص. مت. لاره سمول، لاره نېغول، لارښودنه.

**لارښوده جرگه** (lārṣodajargá) ښځ.م. لارښوده شورا، د رهبرۍ شورا.

**لارښوول** (lārṣowә́l) مص.مت.و.گ. لارښودل

**لارغمی** (lārğamáy) نر.م. یو ډول خړ رنگی نبات دی چې وړې وړې پاڼې لري.

**لارغه** (lārğә́) ص. ۱) ډیل، ځنډ، د... تأخیر؛ ۲) وړاندې تېر شوی، لرغونی، پخوانی، ځنډنی.

**لارغه یي** (lārğayí) ښځ.م. ډیل واله، ځنډوالا، شبه یي، شبه ییز.

**لارلباري** (lārlabārí) ښځ.م. داد و فریاد.

**لارلیک** (lārlík) نر.م. لېږد لیک، عبور لیک، عبورنامه.

**لارنیونه** (lārniwә́na) ښځ.م ۱) لارنیول، لاروهنه، لارشوکونه؛ ۲) غلا.

**لارنیوونکی** (lārniwū́nkay) فا.نر.م. ۱) راهزن، لاروهونکی، قطاع الطریق؛ ۲) غل.

**لارو** (lārū́) نر.م. لارروونی، لاروی، لارغوڅوونکی، هغه چې په لاره کې روان وي.

**لاروا** (lārwā́) ښځ.م. د چینجي له هگۍ نه راوتلی بچی.

**لاروړکی** (lārwrә́kay) ص.نر.م. گمراه، هغه چې لار ترې ورکه شوې یا لار ترې غلطه شوې وي.

**لارووني** (lārawū́nay) فا.نر.م.و.گ. لاروی.

**لاروهل** (lārwahә́l) مص.مت. ۱) لارشوکول، په لاره خلک لوټول؛ ۲) مزل کول، سفر کول.

**لاروهونی** (lārwahū́nay) نر.م. ۱) لارشکوونی، شوکمار، ډاکو؛ ۲) مساپر، روان، رهي.

**لاروی** (lārawáy) نر.م. ۱) لارو، لارووني، په لاره تلونکی؛ ۲) پردی، نا آشنا، نابلده.

**لاره** (lārá) ښځ.م. آهنگ، نغمه، سرود.

**لارۀ** (lārә́) نر.م. ۱) د لوړ مغیره حالت، پېرزوینه، لوربینه؛ ۲) درلود، د درلود مغیره حالت.

**لاره چاره** (lāračā́ra) ښځ.م. ۱) چل، هنر، روگودر، تدبیر، تجویز؛ ۲) تعلق، راشه درشه.

**لاړۍ** (lārә́y) ښځ.م.ج. چکله موټر، ترک.

**لارې چارې** (lārečā́re) ښځ.ج. لارې وسیلې، امکانات، لارې گودرې.

**لاریز** (lāríz) ص. نر.م. په لار اړوند، راهدار.

**لاریزه** (lāríza) ښځ.م. چوک، دوه طرفه.

**لارې لارې** (lārelā́re) ص. هغه څه چې ډېرې لارې په کې وي، ډېرې لارې لرونکی.

**لاریون** (lāryū́n) نر.م. ځاو، مارش، مظاهره، راه پیمایي.

**لاړ** (lāṛ) نر.م. ولاړ، د تلل ماضي حالت - کورته لاړ.

**لاړپاکی** (lāṛpākay) نر.م. د لاړو پاکولو دسمال، د کوچني د لیاړو پاکولو څپوتی.

**لاړجن** (lāṛjә́n) نر.م. ورخاړی، یو ډول سابه دي.

**لاړژن** (lāṛžә́n) ص. نر.م. ۱) لاړن، لاړو، لاړجن؛ ۲) لاړگیر، لاړگیرک.

**لاړگرک** (lāṛgarә́k) نر.م. لاړژن، لاړجن، لاړگیر.

**لاړن** (lāṛә́n) ص. نر.م. لاړجن، لاړژن، لیاړجن، لاړو، هغه چې له خولې نه یې لاړې بهېږي.

**لاړول** (lāṛawә́l) مص. مت. ختمول، برباد ول، تباه کول، ضایع کول.

**لاړه** (lā́ra) ښځ.م. ۱) توکانه، لعاب، د خولې اوبه؛ ۲) بهیر، هجوم، د خلکو گڼه گونه؛ ۳) د ښځینه لپاره د تلل ماضي حالت.

**لاړې** (lā́ṛe) ښځ.ج. (م. لاړه) ناړې، د خولې لاړې.

**لاړی** (lā́ṛay) نر.م. ۱) دستک، داگه؛ ۲) هغه لرگی چې د ول پرې وهل کېږي.

**لاړۍ** (lāṛáy) ښځ.م.ج. د بیوې لاړۍ، هغه لرگی چې د بیوې په آخر کې لگول شوی وي.

**لاړېجن** (lāṛeján) ص. نر.م. ۱) وگ. لاړزن؛ ۲) ورخاړی، یو ډول خوندور سابه دي.

**لازم**(۱) (lāzím) ص. نر.م.ج. ۱) وروسته لگېدلی، نښتی؛ ۲) اړین، ضروري؛ ۳) گر. هغه مصدر چې فاعل لري.

**لازم**(۲) (lāzə́m) نر.م. ۱) پښېمان؛ ۲) ستومانه.

**لازموالی** (lāzımwā́lay) نر.م. ضرور کېدنه، لازمېدنه، حتمیوالی، ضرورت.

**لازمول** (lāzımawə́l) مص. مت. ۱) اړینول، ضروري گرځول؛ ۲) پښېمانول، ستومانول.

**لازمه** (lāzımá) ښځ.م. ضروري سامان اسباب.

**لازمي** (lāzımí) ص. ښځ.م. ۱) ضروري، اړین؛ ۲) ف. هرو مرو، بالضرور.

**لازمېدل** (lāzımedə́l) مص.ل. ۱) اړین کېدل، ضروري کېدل؛ ۲) پښېمانېدنه، ستومانېدنه.

**لازوال** (lāzawā́l) ص. تل تر تله پاتې کېدونکی.

**لاږ** (lāẓ) نر.م. جوړه شوې رسۍ، غنبتل شوې رسۍ.

**لاس** (lās) نر.م. ۱) د انسان په بدن کې له اوږې نه د منگولو تر گوتو پورې برخه؛ ۲) زور، طاقت؛ ۳) لیاقت، قابلیت؛ ٤) وار، ځل.

**لاسا** (lāsā́) ښځ.م. سرهنبې، گوند، کنډ، یو ډول چېبر (سرهنبې) چې له ونو څخه لاس ته راځي.

**لاس اخیستنه** (lāsaxistə́na) ښځ.م. تېرېدنه، استعفا، صرف نظر.

**لاس اخیستی** (lāsaxístay) نر.م. (ج. لاس اخیستي) تېر شوی، مستعفي، صرف نظر شوی.

**لاس اړی** (lāsáṛay) ص. نر.م. محتاج، حیران، لاس تنگی، لاس بندی.

**لاس اکتوی** (lā́saktáway) ص. نر.م. د بل لاس ته ناست، لاس کتونی، لاس کوڅی، محتاج.

**لاس انگی** (lāsangáy) ښځ.م.ج. یو ډول لوبه ده.

**لاس باړه** (lāsbāṛá) ښځ.م. د لاس محنت مزدوري د باړې د محنت عوض یا بدله.

**لاس بری** (lāsbáray) نر.م. غالب، زورور، فاتح.

**لاس برۍ** (lāsbaráy) ښځ.م. لاس برکېدنه، غلبه، وس، توان، طاقت.

**لاس بېله** (lāsbelá) ښځ.م ۱) دستکله، لاس ماغو، دستکشه؛ ۲) دستانه، سخاوت.

**لاس پاک** (lāspā́k) نر.م. دست پاک، لاس وچونی، لاس چوره، دست پاک.

**لاس پاکی** (lāspā́kay) نر.م. ۱) پر بل چا گناه اچونه؛ ۲) پر بل چا پړه اچونه.

**لاس پراخی** (lāsparā́xáy) ص. نر.م. د خلاص لاس خاوند، د خلاص مټ څښتن، سخي.

**لاس پرانیستی** (lāsprānístay) ص. نر.م. وگ. لاس پراخی.

**لاس پړک** (lāsp ṛák) نر.م. لاس پړق، چک چکې.

**لاس پړکا** (lāspṛaká) ښځ.م. لاس پړک، لاس پړکونه، چکچک.

**لاس په سر** (lā́spəsár) ص. نر. بېزار، فارغ، خلاص، وزگار، هغه چې اړیکې یې سره ختم وي.

لاس په لاس (lāspalā́s) نر.م. ژر ترژره، فوري، سمدلاسه، پروخت، هغه ساعت.
لاس پورې کول (lāsporekawə́l) نر.م. شروع کول، پیل کول، ابتدا کول.
لاس پیلي (lāspaylí) ښځ.م. پیل، آغاز، شروع.
لاس تر زنې (lāstərzə́ne) ف. ۱) خواشینی، حیران، پرېشان؛ ۲) مج. مین، عاشق.
لاس تړلی (lāstaṛə́lay) ص. نر.م. ۱) بندي، ولچک، زولانه شوی؛ ۲) مجبور، محتاج.
لاس تړونی (lāstaṛū́nay) نر.م. ۱) هغه څه چې لاس پرې تړل کېږي؛ ۲) گانه، گرو.
لاس تنگی (lāstángay) ص. نر.م. لاس اړی، لاس بندی، محتاج.
لاستور (lāstawár) ص. لاستی لرونکی، دسته دار، هغه څه چې لاستی لري.
لاستوره (lāstawə́ra) ښځ.م. څمڅۍ.
لاسته (lā́sta) ښځ.م. ۱) لوری، اړخ؛ ۲) سیمه.
لاسڅپوټی (lāscapū́ṭay) نر.م. دسمال، دستمال.
لاس چوړه (lāsčū̆ṛá) ښځ.م. لاس پاک، لاس وچونی، لاس وچ، رومال.
لاس خه (lāsxá) ښځ.م. د لاس خاوند.
لاستی (lā́stay) نر.م. لاسکی، د آلاتو لاسنیوځای، موټه، دسته، چومبی.
لاسرغاوگر (lāsrağāwgár) ص.نر.م. لاسکاري، لاسي صنعتکار.
لاسرغاوه (lāsrağāwá) ښځ.م. لاسي رغاوه (صنعت)، لاسي کار.
لاسرغاویز (lāsrağāwíz) نر.م. د لاسي کار اړوند، د لاسي صنعت اړوند.
لاسروغبړ (lāsroğbáṛ) نر.م. لاسي ستړي مه شي، لاسي هرکلی.

لاس شخولی (lāssxwálay) نر.م. لاسکڅوړه، کیسه، خلته، دستکول.
لاس کاری (lāskā́ray) ص.نر.م. (ج. لاس کاري) کسبگر، ورهنگر، لاسرغاوگر.
لاس کاري (lāskārí) ښځ.م. (ج. لاس کارۍ) ورهنه، ورهنگري، کسبکاري.
لاس کتوی (lāskatáway) نر.م. ترلاس لاندې.
لاس کوڅی (lāskoćay) ص. لاسپوڅی، اہل، لاس لاندې، مطیع، فرمان وړونکی.
لاس کونی (lāskū́nay) نر.م. د نانوایانو د ډوډۍ پخولو لستونی.
لاس گاډی (lāsgā́ḍay) نر.م. لاسي کراچۍ، لاسي ریړه.
لاس گټه (lāsgáṭa) نر.م. د لاس مزدوري.
لاس گری (lāsgə́ray) نر.م. مرستندوی، دستیار.
لاس گیر (lāsgír) ص. نر.م. ۱) بندي، اسیر؛ ۲) د دروازې موټی.
لاس لستونی (lāsləstóṇay) ص. ۱) لاس په لستوني، نېږدې، جوخت؛ ۲) مج. کلیوال.
لاس لیک (lāslík) نر.م. ۱) امضاء، دستخط؛ ۲) دستاویز، اقرارنامه.
لاس ماغو (lāsmāğū́) نر.م. لاسپله، دستکله، دستانه.
لاس منډون (lāsmanḍū́n) نر.م. مداخله، د بل چا په کار کې لاس وهنه.
لاس نجت (lāsnját) نر.م. په پنجه کې کلک رانیونه
لاس نجتول (lāsnjatawə́l) مص. مت. په پنجه کې کلک رانیول، په لاس کې رانیول.
لاس نیولی (lāsniwálay) نر.م. ۱) له لاسه نیولی؛ ۲) ص. سوال کوونکی، غوښتونکی.

**لاس نیونه** (lāsniwə́na) ښځ.م. مرسته، مدد، له لاسه مرسته کونه.

**لاسنیوه** (lāsniwə́) ښځ.م. پاتا، فاتحه اخیستنه، فاتحه گیری، پرکوږده د رضایت دوعا.

**لاس نیوی** (lāsníway) نر.م. ۱) لاسنیوه، بیعت، مریدي، د چا مریدي اختیارول؛ ۲) مرسته.

**لاس وچ** (lāswáč) نر.م. وگ. لاس چوړه.

**لاس وچونی** (lāswəčúnay) نر.م. لاس پاک.

**لاس ورکړه** (lāswárkṛa) ښځ.م. ۱) مدد، امداد، حمایت؛ ۲) روغبړ؛ ۳) بیعت.

**لاس ولونی** (lāswlúnay) نر.م ۱) لاس مینځونی، لاسلونی، چلمچي؛ ۲) ځوک چې د نورو لاسونه مینځي.

**لاسوند** (lāswánd) نر.م. سند، دلیل، مدرک.

**لاس وندل** (lāswandə́l) مص.مت. سند گرځول، لاربښوونه کول، تره جوړول، دلیل جوړول.

**لاس وندی** (lāswandáy) نر.م. ۱) سند، دلیل، تره، دستاویز؛ ۲) باهو، باوو، وښی.

**لاس وهاند** (lāswahánd) فا. نر.م. لاس وهونکی، لاسمنهی، مداخله کوونکی.

**لاس وهنه** (lāswahə́na) ښځ.م. مداخله کونه.

**لاس ویپنی** (lāswipánay) ص. جوته شوی، لاس وهل شوی، گوتې وهلې شوې، لاسی.

**لاس وینځونکی** (lāswinǰúnkay) نر.م. چلمچی، لاس وینځونی، د لاس وینځلو لوښی.

**لاسي** (lāsí) ص. د لاس، لاس ته منسوب، هغه شی چې په لاس جوړ شوی وي.

**لاسی** (lāsáy) ښځ.م.ج. لاس وهلی، پاتې شوی.

**لاش** (lāš) نر.م. ۱) لاښ، مړ وجود، مړ شوی بدن؛ ۲) سخره، درنگه.

**لاشعور** (lāšuṣúr) نر.م. پټ عقل، خفیه عقل.

**لاشعوري** (lāšuṣūrí) ښځ.م. په ناپوهی کې، په نافهمی کې.

**لاشوره** (lāšorá) ښځ.م. شوره، یوه جگه ونه چې خوشبویه سپین گل کوي، د آلو هومره بیضوي شکله بې خونده میوه نیسي؛ سپستان، اطباء الکلیه، دبق.

**لاشه** (lāšá) ښځ.م. ۱) لیاشه، لشکه، لېشه، لشه؛ ۲) د غنمو، اوربشو د وږي لشکه؛ ۳) د ماهي تېره هډوکی؛ ٤) د مچۍ، لړم او... تېره لشکه؛ ٥) لاش؛ ۲) ص. کمزوری، مانده، نړی.

**لاښ** (lāṣ) نر.م. ۱) وگ. لاش؛ ۲) دغره بهرته راوتلی ډډه؛ ۳) تش کړی شوی باغ یا پټی، د تول شوي فصل او میوې پاتې شوې برخه.

**لاښول** (lāṣawə́l) مص.مت. له باغ نه میوه تولول، باغ تشول.

**لاښه** (lā́ṣa) ق. ډېر ښه، ډېر اعلی.

**لاښي** (lāṣí) ښځ.م. هغه بېکاره یا پاتې میوه چې په ونو کې تر شوکولو وروسته پاتې وي.

**لاښېدل** (lāṣedə́l) مص.ل. له باغ او پالېز نه میوه تولېدل، باغ تشېدل.

**لاعلاج** (lāṣılā́j) نر.م. ۱) بې درملنې، لادوا؛ ۲) هغه څه چې حل یې نه راوځي، لاینحل.

**لاغو** (lāğú) نر.م. ارکاره، کړېچی، کتوری.

**لاغورنیکه** (lāğwarníka) نر.م. د نیکه نیکه.

**لافه** (lāfá) ښځ.م. (ج. لافې) وگ. لاپه.

**لاک** (lāk) نر.م. ۱) بند شوی، تړل شوی؛ ۲) سل زره، لک؛ ۳) نر.ج. له چینجو پیدا کېدونکې یو ډول سربښناکه ماده.

**لاکړه کاکړه** (lākṛakā́kṛa) ښځ.م. د کوچنیانو یو ډول ناروغي ده، اوني.

**لاکن** (lākə́n) اد. لېکن، مگر، خو، اما.

لاکولکړه (lākūlákә́ṛa) ښځ.م.د شهادت ګوته.
لاکي (lākí) ص. ۱) د لاکو په څېر رنګ لرونکی، سور ښخن؛ ۲) د لاکو، له لاکو نه جوړ.
لاګ (lāg) نر.م. ۱) اړیکه، تعلق، نسبت؛ ۲) مینه؛ ۳) خوند؛ ٤) شوق؛ ۵) دښمني؛ ٦) چل، غـزه؛ ۷) جادو، کوډې؛ ۸) دارو؛ ۹) مـرسته، مدد؛ ۱۰) تجارتي لین دین، کاروبار، بیوپار، راکړه ورکړه.
لاګدار (lāgdár) ص. نـر.م. ۱) هغه سړی چې د چا سره یې تجارتي لین دین وي؛ ۲) خپلوان.
لاګي (lāgí) ص. ښځ.م. اعتباري، معتمد.
لال (lāl) نـر.م. ۱) لعل، یو ډول کاڼی؛ ۲) ص. سور؛ ۳) یو ډول انګور؛ ۳) پرتوګاڼی؛ ۲) ګونګی، ګونګ؛ ۳) ترټری، چاړا، نبنت ژبی.
لالا (lālā́) ص.نر.م ۱) خدمتګار؛ ۲) صاحب، معزز ٤) ښیا، ساهوکار؛ ۵) خوړ، ګران.
لالچ (lāláč) نر.م. ۱) لالچ، حرص، طمع، لېوالتیا؛ ۲) شور و غوغا، جار و جنجال.
لالک (lālák) ص. نر.م. لالکو، د مشر ورور لقب.
لالکو (lālakó) ص.نر.م. وروړکی، مشر وروړتـه د مینې خطاب.
لال لرګی (lāllargáy) نر.م. د پرتوګاڼي ډکی، باګې سوروونی.
لالګی (lālgáy) نـر.م. اوړی، یو ډول ښایستـه او رنګینه د مشکنو غاړکی ده.
لالن (lālә́n) ص. نر.م. لالی، محبوب، معشوق.
لالنه (lālә́na) ښځ.م. مینه، محبت.
لالهاند (lālahā́nd) ص. نـر.م. اوتـر، سرګـردان، پرېشان، ګډوډ، ترور، وارخطا.
لالهاندتـوب (lālahāndtób) نـر.م. اوترتیا، پرېشاني، سرګرداني، وارخطایي.
لالهاندول (lālahāndawә́l) مص.مت. سرګردانول، اوترول، پرېشانه کول، ترور کول، وارخطا کول.
لالهاندېدل (lālahāndedә́l) مص.ل. اوترېدل، پرېشانـه کېدل، سرګردانېدل، وارخطا کېدل.
لاله (lālá) نـر.م. خاتول، غاټول، سور رنګی سارانی ګل دی چې په منځ کې تور داغ لري.
لاله رخ (lālarúx) ص. نر.م. ۱) ښایسته، ښکلی، لالـه رخسار، لاله رو؛ ۲) محبوب، معشوق.
لاله زار (lālazā́r) ص. نـر.م. ۱) هغـه ځای چې د لاله ګل په کې ډېر وي؛ ۲) چمن.
لاله سری (lālasáray) نر.م. ۱) یو ډول سور سر لرونکی مرغه، ترمی؛ ۲) یو ډول غټ مار.
لاله فام (lālafā́m) ص.نر.م ۱) سور رنګ لرونکی، هغه چې خوله یې ښایسته وي؛ ۲) ښکلی.
لالی (lāláy) نر.م ۱) لاله، مشر ورور؛ ۲) محبوب؛ ۳) غاړه کۍ، د غاړې یو پسول.
لالۍ (lāláy) ښځ.م. ۱) معشوقه؛ ۲) مینا، ښارو.
لالېدل (lāledә́l) مص.ل. للېدل، ځوړندېدل.
لام (lām) نر.م. ۱) د «ل» توري تلفظ؛ ۲) د پوځ یا پلټنې مجموعه؛ ۳) د جنګ تیاری؛ ٤) تص. عالم لاهوت؛ ۵) ص. کوږ ووږ، تاو راتاو.
لامبل (lāmbә́l) مص. مت. لمبل، غسل کول.
لامبو (lāmbó) ښځ.م. په ژورو اوبو کې د ګرځېدو یا تېرېدو فن.
لامبوزن (lāmbozán) ص.نر.م. و ګ. لامبوګر.
لامبوګر (lāmbogár) ص.نر.م. لامبو وهونکی، لامبوزن، د لامبو په فن پوه.
لامده (lāmdá) ص. ښځ.م. لنده، لونده، نمجنه.
لامذهب (lāmazhab) نـر.م. بې دینه، دهري.
لامسه (lāmisá) ښځ.م. یو شي تـه د ګوتو وروړ قوت، په ګوتو د یو شي د معلومولو قوت.

**لامعه** (lāmisá) ښځ.م. ځلېدونکې، روښانه.

**لام کلام** (lāmkalā́m) نر.م. خبرې اترې، ګړه بړه.

**لامل** (lāmə́l) نر.م. کېل، سبب، علت، دليل، عامل، وسيله، موجب، لاسوند، انګېزه.

**لام لباس** (lāmlibā́s) نر.م. جامه، کړه وړه، چال چلند.

**لاملپېر** (lāmlapér) نر.م. توسنپېر، علتيه پېښ، علتيه حالت.

**لاناوې** (lānā́we) ښځ.م. د مشر وررور د ښځې لقب، لالاناوې.

**لانجه** (lānjá) ښځ.م. ۱) مصيبت، پېښه، جنجال، شخړه؛ ۲) پېچيده خبره، تاو راتاو خبره.

**لانجه مار** (lānjamā́r) ص.نر.م. لانجه کوونکی، لانجمار، بدمعامله، جنجالي، لانجه يي، داوه ګر.

**لانجمن** (lānjmán) ص.نر.م. لانجه يي، لانجه ييز، شخړه ييز، نانديز، متنازع فيه.

**لانجين** (lānjín) نر.م. د چونې او مسالې جوړه او کنده.

**لاندی** (lā́ndáy) نر.م. وچه غوښه.

**لاندې** (lā́ndé) ښځ.م. کوز، کښته.

**لاندې باندې** (lā́ndébā́ndé) ق.نر. ښځ.م. کوز و پاس، کښته پورته، تول؛ ۲) يو د بل د پاسه.

**لاندې باندې لاس** (lā́ndébā́ndélā́s) نر.م. د کوچنيانو يوه لوبه ده.

**لاندېستل** (lāndestál) مص.مت. ۱) لاندې باسل، لاندې کول؛ ۲) راپرځول، راځملول، راغورځول؛ ۳) ګېرول، رانيول، راوړل.

**لاندېنی** (lāndenáy) نر.م. هغه چې لاندې وي، ښکتنی، کوزنی، لاندنی، ښکينی.

**لاندېنی مخ** (lāndenaymáx) نر.م. استر، د توشکې يا بل شي لاندېنی پوښ.

**لانډو** (lā́nḍo) نر.م. ډېر لږ وخت.

**لانډيس** (lānḍī́s) نر.م. لنډيس، چنبرخيال، خلاص پلې، د کوچنيانو يوه دوايي ده، لاس پلې.

**لانګه** (lāngá) ښځ.م. ۱) لنګه، پيارمه، د کټ پچارې؛ ۲) يو ډول ونه ده.

**لاڼه** (lā́ṇa) ښځ.م. لاڼې، يو ډول واښه دي چې ايره يې د جامو د وينځلو لپاره کارېږي.

**لاڼی** (lā́ṇay) ښځ.م. ۱) لاړې، د کورونو د چت لرګی؛ ۲) ګانه، پسول.

**لاوارث** (lā́wārə́s) ص. نر.م. هغه چې ميراث خور يې نه وي.

**لاوبالي** (lā́wbālí) ص. نر.م. وګ. لاابالي.

**لاوری** (lā́waráy) نر.م. يو ډول واښه دي چې ژېړ ګل کوي او څاروي يې خوري.

**لاوړم** (lā́waṛám) ص.نر.م. لابل، له بل نه وړاندې، تېر شوی، عموماً له کال سره راځي.

**لاوړمه شپه** (lā́waṛm ašpá) ښځ.م. وګ. لاته وړمه شپه.

**لاوړی** (lā́wṛáy) نر.م. مولی، غريڅی.

**لاوڼ** (lā́wā́ṇ) نر.م. وګ. لاونډ.

**لاونډ** (lā́wā́nḍ) نر.م. ۱) لاوڼ، تودې کړې شړومبې؛ ۲) ننګولی، ترکاري.

**لاوڼې لګاوڼې** (lā́wṇelagā́wṇe) ښځ.ج. چغل ماري، چغلي، وړه راوړه.

**لاوی** (lā́wáy) ښځ.م. يو ډول لوبه ده.

**لاهم** (lā́hám) نر.م. ۱) تر اوسه، لا پورې؛ ۲) نور پرې د پاسه.

**لاهو** (lā́hū́) ص. ۱) اوبو ډوب کړی، غرق، اوبوړی؛ ۲) ضايع، توی؛ ۳) په اوبو کې په لامبو کښته تلنه.

**لاهوت** (lā́hū́t) نر.م. تص. هغه چې سالک په کې د فنافی الله مقام حاصلوي.

لای (lāy) نر.م ۱) لی، ختنه؛ ۲) مایع شی چې د لوښي په ښخ کې کښني.

لایتناهي (lāyatānāhi) ص. بې انتها، چې سر او پای یې معلوم نه وي.

لایخ (lāyǰ) نر.م. څرګند، ښکاره، ظاهر.

لایحه (lāyǰá) ښځ.م. ۱) څرګنده، ښکاره، واضح شی، ښکاره شی؛ ۲) ثبوت؛ ۳) فهرس؛ ۴) پروګرام، منصوبه.

لایحه (lāyhá) ښځ.م. د یوه کار قانوني شرحه، لیک پانه.

لایسنس (lāysáns) نر.م. اجازت پانه، جواز لیک.

لایق (lāyaq) ص. نر.م. ۱) وړ، قابل، مناسب، موزون؛ ۲) جایز، صحیح، سم؛ ۳) اهل، جوګه.

لایموت (lāyamūt) ص. نر.م. ۱) هغه چې مرګ نه لري؛ ۲) هغه خوراک چې د ژوندي ساتلو لپاره کافي وي.

لاینحل (lāyanhál) نر.م. نه حل کېدونکی، ګران، پېچیده، مشکل.

لاینفک (lāyanfák) نر.م. نه جلا کېدونکی، نه پرې کېدونکی، مسلسل.

لایه (lāyá) ښځ.م ۱) تش، وزګار، لیه، خوشي، اېله؛ ۲) برتي، د واسکټ او... استر؛ ۲) کم قیمته شی چې په بل شي کې ګډ شي او مطلوبه مقدار برابر کړي.

لب[1] (lab) نر.م. ۱) ټول، تمام؛ ۲) اسره، دریغ.

لب[2] (lub) نر.م. جوهر، ۱) رس، اوبه، پخوړ، مغز؛ ۲) عقل، پوهه.

لباړ (labāṛ) نر.م. ناپوهه، کم عقل، ناخبره.

لباس (libās) نر.م ۱) نمری، جامه، کالي، پوښاک؛ ۲) شکل، وضع؛ ۳) مج. ظاهرداري، دول دال؛ ۴) ریاکاري، ځان ښودنه؛ ۵) چل ول، ټګي.

لباسي (libāsi) ص. ریاکار، ټګ، دوکه باز.

لبالب (labālab) نر.م. ترمورګو، ژۍ په ژۍ، ښه ډک، مالامال.

لب جب (lábjab) نر.م. ټېل ټال، لپ جپ، چل ول.

لبډر (labḍár) ص.نر.م. غټ کټ، بدشکله، بې دوله.

لبرال (librāl) ص. آزادخیال، خودمختار.

لبرېز (labréz) ص.نر.م. ۱) ډک، خولې ترخولې؛ ۲) مج. حوصله او زغم ختمېدل.

لبړو (labṛó) ص.ښځ.م. دروغجنه، بکواسې ښځه.

لبړه (lábṛa) ښځ.م. مسئله، لانجه، رېړه، شخړه.

لبغ (labáǧ) نر.م. ډینګ، یوه مرغۍ ده چې اوږدې پښې او اوږده غاړه لري.

لبغړی (labaǧáray) ص. نر.م. ۱) نادار، مفلس؛ ۲) لوڅ لغړ، بربنډ، کمزوری؛ ۳) بې زړه، بې جرئته.

لب لباب (lóbilubāb) نر.م. نچوړ، پایله، حاصل، لنډیز.

لبلبکی (láblabakáy) نر.م. یو ډول نبات دی.

لبلبو (lablabū) نر.م. جوغندر، چغندر، یو ډول خوړو نبات دی.

لبنیات (labanyāt) نر.ج. له شیدو څخه جوړ شوي شیان.

لبوزوکی (labuzūkay) نر.م. د نغري راوتلې برخه.

لبوزی (labūzay) نر.م. لبوړی، د غره کرېلېچ، د غره وربوز، ورسک، د غره پوزه، لبوزه.

لبی (labáy) نر.م. د مرغیو نیولو یو ډول دام.

لپانډی (lapānḍáy) نر.م. ګونډی، کچی، چلی، د کوچنیانو لوبې له کانو جوړ ګردی شی.

لپانکی (lapāṇkáy) نر.م. اډک، ادی، سمتی، پډلپانډي سره لوبه.

**لپ څټ** (lápcat̤) ص. نر.م. آباد، ښېراز.

**لپ خور** (lapxór) نر.م. ملامت، پښېمان، ستومان.

**لپړ** (lapáṛ) نر.م. ۱) ربړېدنه، رپ ربې، لړزېدنه؛ ۲) ګډوډ، کنډوکپړ؛ ۲) غیرمهذب؛ ۳) خوشي ګرځېدونکی؛ ٤) ص. نر.م. بربنډ، لوڅ سره استعمالېږي؛

**لپړل** (lapṛə́l) مص. مت. په‌لوبه کې د دوو میرانو هلکانو ځانته د نورو ملګرو انتخابول. لپړنه.

**لپړو** (lapṛū́) ص.نر.م. ۱) لاپوک، لاپو، لافوک؛ ۲) خوشي ګرځېدونکی، آواره ګرد.

**لپړه** (lapaṛá) ښځ.م. بدکاره، کنجره، بدچلنه.

**لپړي** (lpaṛí) ښځ.م. ۱) بېکاره ګرځېدنه، اواره ګردي؛ ۲) پټی، دسماله؛ ۳) پټکی، پګړی؛ ٤) زړه شلېدلې توټه، صافي.

**لپړی** (lapṛáy) نر.م. ختې، چقړې.

**لپ ست** (lápsát) نر.م. و ګ. لپ څټ.

**لپکی** (lapakáy) ښځ.م. ۱) لرګینه اوږد لاستې څمڅۍ چې له کوهي او حوض څخه پکې اوبه ځښي؛ ۲) د ژرنده ګړي لپکی؛ ۳) دایک.

**لپو** (lapū́) نر.م. د اوبو یو څپه، موج، چپه.

**لپوس** (lapū́s) نر.م. تش لاسی، ناچار، مفلس.

**لپونکی** (lapū́ṇkáy) نر.م. د ټانګې غونډې یو نبات دی چې خوړل کېږي.

**لپه** (lápa) ښځ.م. د دواړو لاسو د پنجو د غبرګو نیولو اندازه، د دواړو غبرګو منګولو اندازه.

**لپی** (lapáy) نر.م. پاو.

**لپیت** (lapít) نر.م. د پنېر اوبه.

**لت** (lat) نر.م. ۱) خراب عادت؛ ۲) خوی، خصلت؛ ۳) لته، لغته؛ ٤) وهل، ټکول.

**لتاړ** (latā́ṛ) نر.م. ۱) اخته، نښتی؛ ۲) چخښي شوی، پایمال؛ ۳) تباه، ویجاړ.

**لتاړپتاړ** (latā́ṛpatā́ṛ) نر.م. و ګ. لتاړ.

**لتاړول** (latāṛawə́l) مص. مت. ۱) چخښي کول، پایمالول؛ ۲) ویجاړول؛ ۳) اخته کول، نښلول.

**لتاړېدل** (latāṛedə́l) مص. ل. ۱) چخښي کېدل، پایمالېدل؛ ۲) اخته کېدل؛ ۳) تباه کېدل.

**لت پت** (látpat) نر.م. لټ پټ، ۱) لړلی، ککړ؛ ۲) خراب؛ ۳) لتهولی، چاڼ کړی شوی.

**لت کوپړی** (látkopṛáy) ښځ.م. کډه کوډه، لوښي لرګي، ډول ډبلي، کاډې کوډې، لټ کوپړی.

**لتوپړی** (latópṛay) نر.م. و ګ. اتوب.

**لتوکی** (latū́kay) نر.م. یوه پلن پاڼې ونه ده.

**لته** (látá) ښځ.م. ۱) منطقه، سیمه؛ ۲) لار، لاره؛ ۳) لغته، لګته؛ ٤) زړه توټه، ۵) زړې جامې.

**لتی** (latáy) ښځ.م. لنګتی، د غېږې نولو یو چل، انګړېتی.

**لټ** (laṭ) نر.م. ۱) محور، څورلیځ؛ ۲) د مرغانو یا ګیدړانو د نیولو پرکه، اوسپنیز دام؛ ۳) د توپک ګېټ؛ ٤) ص. نر.م. تنبل، بېکاره، ناړام؛ ۵) نر.م. پوله، برید؛ ٦) لړی، ولونه؛ ۲) رسی، بیاسته.

**لټا** (laṭā́) ښځ.م. غوښتل، پلټل.

**لټ پټ** (láṭpaṭ) نر.م. ۱) ډېر زیات لټول شوی؛ ۲) اړول شوی را اړول شوی.

**لټ توب** (laṭṭób) نر.م. سستي، تنبلي، لټي، لټتیا، لټوالی.

**لټپټی** (laṭpaṭáy) ص. ښځ.م. اوړېدونکې راوړېدونکې کوتره، ملاقۍ کوتره.

**لټ پر لټ** (láṭparlaṭ) نر.م. اړخ پر اړخ، لټ په لټ، ډډې په ډډې، لټ په لټه، ګوټ په ګوټ.

**لټ پېر** (laṭpér) نر.م. ۱) حمله، یرغل، هله؛ ۲) د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**لټرپټر** (latarpatar) نر.ج. الا بلا، بلابېټ، يو څه بل څه، مختلف شيان، لته پته.
**لټرۍ** (latray) ښځ.م. لوبيا، کرخې.
**لټکه**(۱) (latáka) ښځ.م ۱) دوه سرى، لنډى منګور؛ ۲) پخه توره، خوله اړولې توره.
**لټکه**(۲) (latká) ښځ.م. ۱) د پنډ هغه برخه چې بکرۍ ته يې راخلاصوي او ورترې پيدا کېږي؛ ۲) دتوپک ماشه، ليندۍ.
**لټل** (latál) مص.ل. پاڅېدل. درېدل.
**لټند** (latánd) وارخطا، ناقرار؛ ۲) لټوونکى، پلټنډ، متجسس.
**لټول** (latawál) مص.مت. ۱) معلومول، کتل، لټون کول؛ ۲) پارول، رمول.
**لټون** (latún) نر.م. ۱) تلاښ، معلومونه، لټونه، پلټنه؛ ۲) وګ. لټول.
**لټه**(۱) (láta) ښځ.م. نارامه، ناراسته.
**لټه**(۲) (latá) ښځ.م. ۱) يو ډول سپينه نخي ټوټه؛ ۲) غم، د زړه نول، درد؛ ۳) تانګ، دخره د کتې او بار د ټينګولو پټه.
**لټه پېر** (lataper) نر.م. ټېل ټال، اندوخر.
**لټېدل**(۱) (latedál) مص.ل. نا راستېدل، سستېدل.
**لټېدل**(۲) (latedál) مص.ل. ۱) معلومېدل، تالاشي کېدل؛ ۲) پاڅېدل، جګېدل؛ ۳) پارېدل، په غوسه کېدل.
**لټېره** (laterá) ښځ.م. ناراسته، لټه، آرام طلبه، سسته.
**لټينګر** (latingár) نر.م. يو ډول لټ ملغ دى.
**لج** (laj) نر.م. ۱) مخالفت، ځېل، سرتنبګي، هوډه؛ ۲) لانجه، شخړه.
**لجاجت** (lajājat) نر.م. ځېل کول، ضد کول، هرډه کول؛ ۲) لانجه کول.
**لجام** (lajām) نر.م. واګې، لګام، ملونه.
**لچ** (lač) نر.م. ۱) دسترګو او ګوتو خوږ؛ ۲) د خطمي ګل؛ ۳) د زخم ځړيکه، د زخم درد.
**لچر** (lačár) ص. نر.م ۱) سرزور، سرتمبه؛ ۲) مج. کم اصل، بې شرم؛ ۳) لچرکى، لوچک، لنډوور.
**لچرتوب** (lačartób) نر.م ۱) سرزوري، بدخويي؛ ۲) مج. رذالت، بې شرمي، لچرتيا، لچري.
**لچک** (lačák) نر.م. ۱) د سر ترلو دسمال؛ ۲) پوست والى؛ ۳) کوږوالى؛ ٤) په اجسامو کې د غځېدو، کېږېدو، راغونډېدو څخه بېرته خپل حالت ته راتګ؛ ٥) په سر کړي ټيکري يا زړوکي کې د څه شي لکه سبو، مېوې او نورو د اچولو لپاره د يو ځانګړې پنډه کي موقتي جوړونه، چې معمولاً مخې ته ځوړند وي.
**لچکی** (lačakay) نر.م. ناورى، په دوک تاو شوى تار، د څرخې د دوک تاو شوى تار.
**لچن** (lačán) ص. نر.م. د سترګو درد، د سترګې يا ګوتې زخم چې ځړيکې وهي.
**لچنه** (lačána) ښځ.م. پليته، کنجره، لچره.
**لچه** (láča) ښځ.م. بېړه، عجله.
**لچه پيتو** (lačapitó) ښځ.م. دماشومانو يوه لوبه.
**لڅاوو** (lacāwū) ص. نر.م. لوڅاوو، برسېرانډ، رابرسېرونکى، لوڅوونکى، پيدا کوونکى.
**لڅۍ** (lacáy) ښځ.م. ګنجي، پوڅۍ، په لاس د وريښمو شويو وريو ګونجې، پونۍ.
**لحاظ** (lihāz) نر.م. ۱) خاطر، مخ؛ ۲) خيال، پام؛ ۳) نظر؛ ٤) مج. حيا؛ ٦) مروت، سرېټوب.
**لحد** (lahád) نر.م. ډوره، د قبر په څنډه هغه ژوره کنده چې مړى په کې اېښودل کېږي.
**لحظه** (lahzá) ښځ.م. ۱) شېبه، سترګې رپ، دم؛ ۲) مج. ساعت، ګړۍ.

**لحن** (láhan) نر.م. ښه آواز، خوږ آواز.

**لختی** (laxtáy) ص. ګډېدونکی، ابجرا

**لخړ** (laxáṛ) نر.م. نیم پاو.

**لخک** (laxak) نر.م. چتنی، چوړ، د دروازې چوڼ.

**لخکي** (laxakí) داندی داندی، رنګړې، هغه غنم چې یو یو بوټی شنه شوي وي، رنګړې.

**لخه** (láxa) ښځ.م. یو ډول خړ رنګې مرغی.

**لد** (lad) نر.م. ۱) ترنګن، ترنګر؛ ۲) المن، د کمیس لمن؛ ۳) د ختنو او خوشایو ګډوالی.

**لدړه** (ladáṛa) ښځ.م. دلۍ، کوټه، انبار.

**لدي** (ladí) ص. پیوندي، د فلزاتو او نورو شیانو یو بل سره لیم یا پیوند.

**لډامی** (laḍā́may) نر.م. وربښمین دسمال چې د نوي زېږېدلي کوچني پر مخ یې اچوي.

**لډر** (laḍár) ص. نر.م ۱) کباړي، د زړو شیانو کار و بار کوونکی؛ ۲) ابله ګرد؛ ۳) مج. جوالي.

**لډو** (laḍū́) نر.م. د اس-خرهٔ غوشیان، خاشنه، پرشنه.

**لډه** (laḍá) ښځ.م. ۱) دوښو پنډ؛ ۲) منجیله.

**لډي** (laḍí) نر.م. یو ډول مرز.

**لذا** (lıza) اد. ځکه، دې لپاره، ترو، نور نو.

**لذت** (lızát) نر.م. خوند، مزه، ذایقه.

**لذیذ** (lazíz) ص نر.م. خوندور، مزېدار، خوږ خوندی.

**لر** (lar) نر.م. ۱) کښته، لاندې، کوز؛ ۲) ارزان، کم قیمته؛ ۳) سپک، د ادنیٰ درجې؛ ٤) مغلوب، ماتې؛ ٥) ص. نر.م. لړ، صادق.

**لراوښی** (lárawşay) نر.م. اوښی، دښځې ورور.

**لربر** (lárbar) نر.م. ۱) لاندې باندې، کـوز و پاس، ښکته پورته؛ ۲) تهول، لـه ځېرمې، له ځېلمې، له یوه مخه.

**لرتېرمهال** (lartermahā́l) نـر.م. تېـره بعیـده زمانه، ماضي بعیده.

**لرزان** (larzā́n) نـر.م. لړزان، ږج، رپ ربی، لـړزه، لړسپ.

**لرزه** (larzá) ښځ.م. و ګ. لړزه له تولو صیغو سره.

**لرزی** (larzáy) نـر.م. د ځـرمنو دستکلې دې چې د ځینو ازغنو بوټو د ربېلو لپاره استعمالېږي.

**لرستاینوم** (larstāynū́m) نـر.م. هـغـه ستاینوم (صفت) چې ترخپل ستایلي (موصوف) وروسته په خبري برخه کې راځي.

**لرشین** (laršín) نر.م. لیېرشن، لـړسن، د حیواناتو په لړي کې ګنډګي یا خوشایي.

**لرغن** (larğán) ص. نـر.م. ۱) ناکـرار، ناقـرار، ناآرامه؛ ۲) بې خوبه.

**لرغزون** (largazūn) نر.م. لـرغـړی، تهلفون.

**لرغون** (larğū́n) نر.م. وراندې، مخکې، ړومبی.

**لرغونپلور** (larğūnplór) نر.م. د لرغونو ځیزونو پلورنځی، عقیقه پلورنځی، عقیقه فروشي.

**لرغـونپلوری** (larğūnplóray) ص.نـر.م. د لرغونو ځیزونو پلورنکـی، عقیقه پلورونکی، عقیقه فروش.

**لرغرنپوه** (larğūnpóh) نر.م. لرغونپېژندونکی، لرغونپوهاند.

**لرغونپوهاند** (larğūnpohánd) نـر.م. چې په لرغونپوهنه کې یې پوهاندي اخیستې وي.

**لرغونپوهنه** (larğūnpohána) ښځ.م. د لرغونو اثارو د ځېړنې علم، ارکیالوجي.

**لرغـونپـوهـنیـز** (larğūnpohaníz) نـر.م. د لرغونپوهنې اړوند، ارکیالوجیک.

**لرغونتوب** (larğūntób) نـر.م. وراندې والی، مخکې والی، لرغونوالی، وراندیتوب.

**لرغونی** (larğū́nay) نر.م. لرغون، پخوانی، قدیمي.

**لرغی** (lárğáy) نر.م. پخوا، زوړ وخت.

**لرکړی** (larkáṛay) نر.م. با لواسطه مفعول.

**لرکړی پېر** (larkaṛypér) نر.م. دبا لواسطه مفعول حالت.

**لرګبان** (largbā́n) ص.نر.م. لرګبه، د لرګیو کار کوونکی، لرګي خرڅوونکی، لرګي والا.

**لرګبه** (largbá) ښځ.م. لرګوواله، لرګي خرڅوونکې.

**لرګتوږاند** (largtožā́nd) نر.م. د لرګي توږنې ماهر، په لرګیو کې انځور جوړوونکی، کنده کار.

**لرګتوږنه** (largtožə́na) ښځ.م. لرګي توږنه، د لرګي توږنې پوهه، کنده‌کاري.

**لرګی** (lárgáy) نر.م. د ونو ډډ یا ښاخونه.

**لرګی** (largə́y) ښځ.م. لېرګی، د غوږو پوڅکي یا نرمې.

**لرګین** (largī́n) ص. نر.م. د لرګي، له لرګي جوړ.

**لرل** (larál) مص. مت. ۱) درلودل، ساتل؛ ۲) په قبضه کې کېدل؛ شته کېدل، سره موجود کېدل.

**لرلری** (lạrlaráy) نر.م. دوره، ګردش، پېر.

**لرلید** (lərlī́d) نر.م. سترګلید، دورنما.

**لرلیدوال** (lərlidwā́l) نر.م. لرلیدپال، دورنماګرا.

**لرلیدواله** (lərlidwā́la) ښځ.م. لرلید پالنه، دورنماګرایي.

**لرلیدی** (lərlī́day) ص.نر.م. لروین، لروینی، دوربین (انسان،عینک).

**لرلیدیز** (lərlidī́z) نر.م. لرلیدي، د لرلید اړوند، دورنمایي.

**لرلیکنی** (lərlikā́nay) نر.م. هغه لیک ماشین چې مخابراتي لیک تاپیوي.

**لرلیکون** (lərlikū́n) نر.م. تېلګرام او د تېلګراف ماشین.

**لرلیکونپوهه** (lərlikūnpóha) ښځ.م. د تېلګراف پوهه، د تېلګراف علم.

**لرلیکوال** (lərlikwā́l) نر.م. تېلګرافچي.

**لرلیکوني** (lərlikūní) ښځ.م. تېلګرافي.

**لرمل** (larmál) نر.م. مازیګر، نمازدیګر، مازدیګر.

**لرنغوتنومځری** (lərnaǧwatnūmӡaray) ق.نر.م لرې اشارې ضمیر.

**لرواټنی** (lərwāṭánay) ق.نر.م. د لرې فاصلې، لېرې مزلی (توغندی، وسله)

**لروکی** (larū́kay) نر.م. د «لور» تصغیر.

**لرول** (larawə́l) مص. مت. ماتې ورکول، په شا تمبول، مغلوبول.

**لروین** (lərwī́n) ق.نر.م. لرخرک، لرلیدونکی، لروینی، لرلیدی، دوربین.

**لروینون** (lərwinū́n) ق.نر.م. تېلوېژن، تلویزیون.

**لره** (lará) اد. لپاره، له‌خاطره، له.

**لری** (lə́ray) نر.م. د ښاروېو معده.

**لری** (laráy) نر.م. نه‌بریا، ناکامي، ماتې، لاس نه رسېدنه.

**لرې** (láre) ص. ۱) لېرې، بېرته، په ډېره فاصله؛ ۲) خوا، ډډې ته، ورک؛ ۳) خلاص، پرانیستی.

**لرې توب** (larətób) نر.م. لېرېتوب، لرېوالی.

**لرېدل** (laredə́l) مص. ل. ماتې خوړل، په شا تمبېدل، ناکامېدل.

**لری سوپری** (lə́raysoparáy) نر.م. ۱) لترېتر، د ښاروي لری، کولمې، پرپوس او نور د ننني غړي؛ ۲) مج. فضول او بېکاره شی.

**لري لارغه** (larilā́rǧa) ص. ډېر زیات ځنډ.

**لړ** (laṛ) نر.م. ۱) سلسله، قطار؛ ۲) هار، امېل؛ ۳) ول. ګونځه؛ ٤) د مچوغنې پړی.

**لړاوڅټاو** (laṛāwcaṭā́w) نر.م. ۱) لړل څټل؛ ۲) ګوزاره، قوت لایموت؛ ۳) اخلې پخلې.

**لړاک** (laṛā́k) ص. نر.م. ناړامه، ګستاخ، شوخ.

**لړاوو** (laṛāwū́) ص. نر.م. جنګره.

**لړپوس** (laṛpū́s) نر.م. کباب، وریته، وریت، ستي.

**لړزوني** (laṛzū́náy) نر.م. د اوښانو یوه ناروغي ده چې توخې کوي.

**لړزه** (laṛzá) ښځ.م. رېږدېدنه، ړچېدنه، رپ رپی، لړسپ.

**لړزېدل** (laṛzedə́l) مص. ل. ۱) رېږدېدل، لړزېدل، رېږدېدل؛ ۲) وارخطا کېدل، وېرېدل.

**لړسپ** (laṛsáp) نر.م ۱) ناکراري، زګېروی، فریاد؛ ۲) و ګ. لړزان.

**لړسن** (laṛsán) نر.م. و ګ. لړشين.

**لړشم** (laṛšám) نر.م. لړشین؛ و ګ. لړشين.

**لړشوب** (laṛšób) نر.م. لړشوپ، بېکاره نګولي، ډېر اوبزن او نروب نګولي.

**لړغمی** (laṛğámáy) ص.نر.م. ۱) ناآرامه، ناقراره؛ ۲) پرېشانه، وارخطا.

**لړل**(۱) (laṛə́l) مص. مت. سره ګډول، په کاچوغه یا لرګي یا بل څه سره یو ځای کول.

**لړل**(۲) (laṛál) مص. مت. ځان بوختول، وخت تېرول.

**لړلیک** (laṛlík) نر.م لیکلړ، نیولیک، د سرلیکونو فهرست.

**لړم** (laṛám) نر.م. یوه مضره چیچونکې حشره ده، عقرب، ګژدم، د لمریز کال اتمه میاشت.

**لړمکه** (laṛamáka) ښځ.م. لړمه، پت، یو ډول جلدي ناروغي ده چې پر بدن موقتي سرې دانې راخېژي.

**لړمون** (laṛmū́n) نر.م. لړمين، ۱) لړمانښ، د ګېډې دننه برخه؛ ۲) مج. باطن، د ننه، روح، زړه.

**لړمون خورينی** (laṛmū́nxorínay) ص.نر.م. ۱) زاړه چاودی، هغه چې په مېرزړه کار کوي؛ ۲) هغه چې دننه زړه یې خوړین وي.

**لړمه** (laṛamá) ښځ.م. و ګ. لړمکه او لړمی.

**لړمی** (laṛamáy) ښځ.م. لړمه، ۱) پېشوګی، پی، یو ډول چینجی؛ ۲) د غنمو په څېر یوه خزنده ده.

**لړو** (laṛū́) ص. آواره، فضول خرڅ، خوشکی، خوشې ګرځېدونکی.

**لړوبی** (laṛóbay) نر.م. ګډه مایع، مخلوطه مایع.

**لړوپتو** (laṛū́patū́) ص. بې نظمه او بې ډوله.

**لړوڅټو** (laṛū́čaṭū́) ص. بې فايدې خرڅ کونه، بې ځایه خرڅ کونه، بې قاعدې ژوند تېرونه.

**لړوچړ** (laṛūčā́ṛ) نر.م. بې ځایه اسراف.

**لړوڅټو** (laṛū́caṭū́) ص. ۱) حریص، وږسترګی، تېښ؛ ۲) قوت لایموت.

**لړوخ** (laṛóx) نر.م. یو ډول واښه، کارغه خپه، مرغۍ خپه، مرغیکښ، مرغۍ څپاله.

**لړومی** (laṛū́may) نر.م. ۱) چخنی، څښښلی؛ ۲) اور لړونی، د اور لړلو لرګی یا سیخ؛ ۲) ص. نوم ورکی؛ ۳) تېز، توند؛ ٤) مین، لېوال.

**لړونکی** (laṛū́nkay) فا. نر.م. ۱) و ګ. لړل؛ ۲) کنستونکی، کېندونکی.

**لړونکی څټونکی** (laṛū́nkaycaṭū́nkay) نر.م. څټونکی، هغه څوک چې څه ګټي او هغه څټي.

**لړونی** (laṛū́nay) نر.م. لړومی، اور لړونی.

**لړه** (lā́ṛa) ښځ.م. ۱) تور لوګی؛ خره ګوره وريځ؛ ۲) سلسله، قطار؛ ۳) جګړه، شر؛ ٤) له وښو یا کېږو جوړه شوې ګاډیلی، څنګه؛ ٥) پندوس؛ ٦) ص. غور ځېدلی؛ ۷) پورته، اوچت.

**لړه غومی** (lā́ṛağū́may) نر.م. چور، تالان.

**لړی** (laṛə́y) ښځ.م. ۱) سلسله، قطار، ردیف، زنځیر؛ ۲) شیندی، بکیانه؛ ۳) د ښځو د چارګل ډنهر؛ ۲) د نجونو یوه لوبه.

**لړې تړې** (laṛétaṛé) ښځ.م. شور، څوږ.

لړېڅی (laṛecáy) نـر.م. د ډېگ لړلو غټه څمڅی یا کاچوغه، ستره څمڅه.

لړی لړی (laṛáylaṛáy) ښځ.م. پرله پسې، یوپه بل پسې، مسلسل.

لړېده (laṛedá) ښځ.م. برتـه، بـرتـه، په اوريا انگار پاخه شوي بانجان یا باټينگن.

لړېزم (laṛézam) نـر.م. یو ډول نگـولی دی چې د رواش پاڼي له اوړو سره گډوي او پخوي يې.

لړېزنگ (laṛezáng) نر.م. یو لرگی دی چې د نصوارو په کدو کې وربانديې نصوار سستوي.

لږ (ləž) نر.م. و گ. لږ.

لږکی (lə́žkay) ص. ۱) لږکوټی، لږچکی، لږ شانې، یو پوټی، لږغوندې؛ ۲) نـږدې، قريباً.

لژند (ləžánd) ص. نر.م. ککړ، په وينو لړلی.

لږ (ləẓ) ص. نر.م. لږ، پوټی، کم، معمولي.

لږ ترلږه (lə́ẓtarlə́ẓa) ص. کم نه کم، لږ نه لږ، لا اقل.

لږ توب (ləẓtób) نر.م. کموالی، لږوالی، لږتيا.

لږتيا (ləẓtyá) ښځ.م. و گ. لږتوب.

لږچکې (ləẓčaké) ص. و گ. لژکی.

لږځه (lə́ẓca) ص. ډېر لږ شی، ډېر زيات کم.

لږخوری (ləẓxóray) ص. نر.م. کم خور.

لږډېر (ləẓḍér) ص. لږو ډېر، څه ناڅه، کم و زيات.

لږ شانې (ləẓšā́ne) و گ. لژکی.

لږغوندې (ləẓǧónde) و گ. لژکی

لږ لږ (lə́ẓləẓ) نر.م. کم کم، ډېر کم..

لږنی (ləẓanáy) نر.م. کمترين، کهترين، اقليت.

لږوبه (ləẓubá) ښځ.م. وچکالي، د اوبو کمی.

لږوډېر (ləẓoḍér) نـر.م. کـم و زيات، څـه ناڅه، تقريبي، تخميناً.

لږول (ləẓawə́l) مص. مت ۱) کمول، لږوالی راوستل، تخفيف راوستل؛ ۲) مج. سپکول.

لږون (ləẓū́n) کسبود، لږوالی.

لږه کی (ləẓakáy) نـر.م. لـږنی، لږواله، کمترين، اقليت.

لږه کي (ləẓakí) نر.ج. لـږني، اقليت، ترنورو کم، په اقليت کې لکه لږکی قوم یا گوند.

لږی (lə́ẓay) نر.م. تفريط، کموالی.

لږېدل (ləẓedə́l) مص. ل. لـږوالی راتلل، کمېدل، تخفيف راوستل؛ ۲) سپکېدل.

لسان (lısā́n) نر.م. ژبه، وينا.

لساني (lısānī́) ښـځ.م. د لسان سره تړلی، له ژبې سره اړوند.

لسانيات (lısānyā́t) نر.ج. د ژبې د تاريخ علم، د ژبې د پيدايښت او ودې د قانون علم.

لسبه (lasbá) ص. ښځ.م. و گ. گوگ[1].

لست (lıst) نـر.م. لِست، د شيانـو د تفصيل فـرد، فهرس، فهرست، نوم ليک، لړليک.

لستونکی (lastū́nkay) نر.م. د لستوني مصغر، د ډوډۍ پخولو پر وخت لستونی.

لستونی (lastónay) نـر.م. د کميس، کرتۍ، هغه برخه چې لاس په کې پټ وي. لستينی.

لسته (lastá) ښځ.م. ۱) طرف، څنډه؛ ۲) ربع.

لسکی (laskáy) ښځ.م. دېله، د پټو لس خالی.

لسکی (lə́skáy) ص. شوم، بخيـل، ورستړگی.

لسگون (lasgū́n) نر.م. د لسو روپو لوټ، لسيز.

لسنکی (lasankáy) ښځ.م. یو ډول بې گله گياه ده چې نري ډنډر لري.

لسي (lasí) ص. ۱) د شـاتـو اوبـه؛ ۲) السـگـون؛ ۳) نري شوده يا شلومبې.

لسيز (lasíz) نر.م. ۱) د لوخو ببخ، لښېر، شاوړی؛ ۲) ص. نر.م. له لس عدد سره اړوند.

لسيزه (lasíza) ښځ.م. لس کليزه، دهه، معشر.

لش (laš) ص. نر.م. ناراست، لټ، ناکاره، خوشې.
لشته (lášta) ښځ.م. و ګ. لښته.
لشکه (lašáka) ښځ.م. ۱) لشه، لاشه، د مچیو او نورو لېښه؛ ۲) د ووړې لشه، شوغه.
لشکي (lašakí) ص ۱) لشه لرونکی نبات؛ ۲) هغه غنم چې ووړې یې لشه ولري.
لشکۍ (lašakáy) ښځ.م. یو ډول ګیاه ده.
لشل (lašə́l) مص. مت. و ګ. لوشل.
لشماتي (lašmā́ti) ص. تېرمې اوبه، نیم ګرمې اوبه، تمنې اوبه.
لشمکه (lašmáka) ص. ښځ.م. ورانه او چالاکه، نخره بازه، لشمکۍ، شوخه، لک لکۍ.
لشڼ (lašáṇ) نر.م. و ګ. لاشه.
لشوړه (lašoṛá) ښځ.م. و ګ. لاشوره.
لشه (lašá) ښځ.م. و ګ. لشکه.
لښتلیک (laṣtlík) نر.م. جدول، ګراف، چارټ، دیاګرام.
لښته (láṣta) ښځ.م ۱) چوکه، نرۍ څانګه؛ ۲) مج. نرۍ لوړه او ښایسته نجلۍ.
لښتۍ (laṣtáy) ښځ.م ۱) لولۍ، نځاګره؛ ۲) والۍ، غوړوالۍ؛ ۳) یو ډول نبات دی.
لښتی (laṣtáy) نر.م. ۱) جدول؛ ۲) وړوکې نرۍ ویاله؛ ۳) بادام، غروښتی، وړ ښتی.
لښتي کنډ (laṣtaykánḍ) نر.م. د بادام د ونې کنډ یا چېرې چې زر ګنډ هم ورته وایي.
لښکر (laṣkə́r) نر.م. ۱) پوځ، سپاه؛ ۲) ګڼ خلک، د ډېرو خلکو ډله.
لښکرتون (laṣkartū́n) نر.م. لښکرځی، لښکر کوټ، لښکرګاه.
لښکرځای (laṣkarǰā́y) نر.م. چوڼۍ، قشله، اردوګاه، عسکري قطعه، لښکرکوټ.
لښکرکوټ (laṣkarkóṭ) نر.م. لښکرځای.
لښکرلېږد (laṣkarléẓd) نر.م. پوځي لېږد، لښکر کښي، سفربري (د جنګ لپاره).
لښکرلېږدي (laṣkarleẓdí) ښځ.م. د لښکر لېږد اړوند، سوق الجیشي، د سفربرۍ اړوند.
لښکرماتی (laṣkarmā́tay) نر.م. لښکر ماتوونکی، پوځ ماتونکی، فوج شکن.
لښکروال (laṣkarwā́l) نر.م. لښکرپال، پوځیوال، نظامیګر.
لښکرواله (laṣkarwā́la) ښځ.م. پوځیواله، نظامیګرایي، نظامیګري.
لښکري (laṣkarí) ص. پوځي، سپاهي، د لښکر سره تړاو لرونکی، د لښکر غړی.
لښکی (láṣkay) نر.م. ۱) د رګ وهلو نشتر؛ ۲) یادښت، یادلرنه؛ ۳) لړکی، لړکوټی.
لښل (laṣə́l) مص. مت. ۱) لهښل، کډه کول، تلل، سفر کول؛ ۲) کوچول، بارول، په سفر روانول؛ ۳) ککړ، لوند؛ ٤) څتل.
لښونی (laṣū́nay) نر.م. ۱) تلونی؛ ۲) هغه حیوان چې د سفر کالي وریاندې بارېږي.
لښه (lúṣa) ښځ.م. خوی، عادت، لوښه، خصلت کرکتر.
لطافت (lıtā́fát) نر.م ۱) ښه والی؛ ۲) سپېڅلتیا؛ ۳) پوستوالی، نرمي؛ ٤) نزاکت؛ ٥) ښایست
لطف (lutf) نر.م. ۱) لور، پېرزوینه، مهرباني ۲) ښه والی؛ ۳) پاملرنه، ٤) خوند، لذت.
لطفاً (lutfán) نر.م. د لطف و مهربانۍ له مخې.
لطیف (latíf) ص. نر.م. ۱) نرم، پوست؛ ۲) صفا روڼ، سپېڅلی؛ ۳) خوندور.
لطیفه (latífa) ښځ.م. ۱) ټوکه، ټکاله، غوره، خندا خبره؛ ۲) ناآشنا، عجیبه؛ ۳) ښه خبره.

لش (laš) ص. نر.م. ناراست، لټ، ناکاره، خوشې.
لشته (lášta) ښځ.م. و گ. لښته.
لشکه (lašáka) ښځ.م. ۱) لشه، لاشه، د مچیو او نورو لېښه؛ ۲) د وړې لشه، شوغه.
لشکي (lašakí) ص ۱) لشه لرونکی نبات؛ ۲) هغه غنم چې وږی یې لشه ولري.
لشکی (lašakáy) ښځ.م. یو ډول گیاه ده.
لشل (lašə́l) مص. مت. و گ. لوشل.
لشماتي (lašmā́ti) ص. ترمې اوبه، نیم گرمې اوبه، تمنې اوبه.
لشمکه (lašmáka) ص. ښځ.م. ورانه او چالاکه، نخره بازه، لشمکۍ، شوخه، لک لکۍ.
لشڼ (lašáṇ) نر.م. و گ. لاشه.
لشوړه (lašoṛá) ښځ.م. و گ. لاشوره.
لشه (lašá) ښځ.م. و گ. لشکه.
لښتلیک (laṣtlík) نر.م. جدول، گراف، چارټ، دیاگرام.
لښته (láṣta) ښځ.م ۱) چوکه، نرۍ ښانگه؛ ۲) مج. نرۍ لوړه او ښایسته نجلۍ.
لښتۍ (laṣtə́y) ښځ.م ۱) لولۍ، نخاګره؛ ۲) والۍ، غوړوالی؛ ۳) یو ډول نبات دی.
لښتی (laṣtáy) نر.م. ۱) جدول؛ ۲) وړوکې نرۍ ویاله؛ ۳) بادام، غروښتی، وړ ښتی.
لښتی کنډ (laṣtaykánḍ) نر.م. د بادام د ونې کنډ یا چېـ، چې زر گنډ هم ورته وایي.
لښکر (laṣkə́r) نر.م. ۱) پوځ، سپاه؛ ۲) گڼ خلک، د ډېرو خلکو ډله.
لښکرتون (laṣkartū́n) نر.م. لښکرځی، لښکر کوټ، لښکرگاه.
لښکرځای (laṣkarǰā́y) نر.م. چونۍ، قشله، اردوگاه، عسکري قطعه، لښکرکوټ.
لښکرکوټ (laṣkarkóṭ) نر.م. لښکرځای.
لښکرلېږد (laṣkarleẓ́d) نر.م. پوځي لېږد، لښکر کښي، سفربري (د جنگ لپاره).
لښکرلېږدي (laṣkarleẓdí) ښځ.م. د لښکر لېږد اړوند، سوق الجیشي، د سفربرۍ اړوند.
لښکرماتی (laṣkarmā́tay) نر.م. لښکر ماتوونکی، پوځ ماتونکی، فوج شکن.
لښکروال (laṣkarwā́l) نر.م. لښکرپال، پوځیوال، نظامیگر.
لښکرواله (laṣkarwā́la) ښځ.م. پوځیواله، نظامیگرایي، نظامیگري.
لښکري (laṣkarí) ص. پوځي، سپاهي، د لښکر سره تړاو لرونکی، د لښکر غړی.
لښکی (láṣkay) نر.م. ۱) د رگ وهلو نشتر؛ ۲) یادښت، یادلرنه؛ ۳) لړکی، لړکوټې.
لښل (laṣə́l) مص. مت. ۱) لښل، کډه کول، تلل، سفر کول؛ ۲) کوچول، بارول، په سفر روانول؛ ۳) ککړ، لوند؛ ٤) ختیل.
لښونی (laṣū́nay) نر.م. ۱) تلونی؛ ۲) هغه حیوان چې د سفر کالي وربانديې باروي.
لښه (luṣa) ښځ.م. خوی، عادت، لوښه، خصلت، کرکتر.
لطافت (lıtāfát) نر.م ۱) ښه والی؛ ۲) سپېڅلتیا؛ ۳) پوستوالی، نرمي؛ ٤) نزاکت؛ ٥) ښایست.
لطف (lutf) نر.م. ۱) لور، پېرزوینه، مهرباني؛ ۲) ښه والی؛ ۳) پاملرنه، ٤) خوند، لذت.
لطفاً (lutfán) نر.م. د لطف و مهربانۍ له مخې.
لطیف (latíf) ص. نر.م. ۱) نرم، پوست؛ ۲) صفا، روڼ، سپېڅلی؛ ۳) خوندور.
لطیفه (latífa) ښځ.م. ۱) توکه، ټکاله، غوره، د خندا خبره؛ ۲) نا آشنا، عجیبه؛ ۳) ښه خبره.

لعل (laʕl) نر.م. وگ. لال[۱].

لعلي (laʕlí) نر.م. یو ډول سوربخن رنگ.

لعنت (laʕnát) نر.م. رټنه، پېغور، ملامتونه.

لعنتي (laʕnatí) ص. پېغلی، لعین، مردود.

لغ (lıg) کوت دې شي د نابالغ

تمام تن، گرچه وي لغ (شرعة ۱۰۹ مخ)

لغات (luğā́t) نر.ج. د لغت جمع؛ ۱) الفاظ، ژبې، ۲) فرهنگ، ډیکشنري، قاموس.

لغاز (lağā́z) نر.م. مسخرې، کتره، ریشخند.

لغت (lūğát) نر.م. ۱) ژبه، لفظ؛ ۲) کږه خبره، تکوری، طنز، کنایه.

لغته (lağáta) ښځ.م. لته، لگته، په پښه گوزار.

لغړ (lağáṛ) ص. نر.م. ۱) لوڅ، نیمه برښند؛ ۲) بې حیا؛ ۳) خالص، نړه؛ ٤) لنډوزی، شاهین.

لغړاوښ (lağaṛaúṣ̌) ص. نر.م. غټ اوښ.

لغړتوب (lağaṛtób) نر.م. لغړتیا، لغړوالی، نیمه برښندتوب؛ ۲) بې حیایي؛ ۳) ببخي نړه.

لغړستنی (lağaṛstánay) نر.م. یو ډول ټوپک دی.

لغړکي (lağaṛkí) نر.ج. دلاندي د پسونو بې غوښو هډوکي.

لغړگل (lağaṛgwál) نر.م. ښلورپانیز گل.

لغړندوکی (lağaṛandū́kay) نر.م. لولکه.

لغړول[۱] (lğaṛawə́l) مص.مت. رغړول، لوغړول، توغړول، په خاورو کې ډډې په ډډې اړول.

لغړول[۲] (lağaṛawə́l) مص.مت. ۱) نیمه برښندول، لوڅول؛ ۲) شرمول؛ ۳) نړه کول، خالصول.

لغړه (lağára) ښځ.م. نیه برښنده، لوڅه، نیمه برمنده.

لغړېدل[۱] (lağaṛedə́l) مص.ل. ۱) نیمه برښندېدل، لوڅېدل؛ ۲) شرمېدل؛ ۳) خالصېدل.

لغړېدل[۲] (lğaṛedə́l) مص.ل. توغړېدل، لغښتل، پر ځمکه ډډې په ډډې اوړېدل، رغړېدل.

لغز (lağz) نر.م. پېچمی، معما، چیشتان، کېسی.

لغزش (lağzə́š) نر.م. پښې ښویېدنه، پرېوتو ته نېږدې کېدنه؛ ۲) خطایي، غلطي، گمراهي.

لغزول (lağzawə́l) مص.مت ۱) ښویول، غورځول، پرېوتو ته جوړول؛ ۲) خطایي کول.

لغزېدل (lağzedə́l) مص. ل. ښویېدل، غورځېدل؛ ۲) خطا کېدل، گمراه کېدل.

لغښتل (lğaṣ̌tə́l) مص. ل. وگ. لغړېدل[۲].

لغکه (lağáka) ښځ.م. کچه اوربشه، لغړې اوربشې، بې لشکو اوربشې.

لغکي (lağakí) ص. یو ډول غنم چې اوږدې لشې او تېره سر لري.

لغم (lágam) نر.م. ۱) کندر؛ ۲) نغم، دننه سوری، سرنگ، ۳) مج. سازش؛ ٤) کوښښ، لټون.

لغمکه (lağamáka) ښځ.م. د چلیپا په څېر دوه لرگي دی چې د وزگوري یا خوسي په اوربوز کې یې تړي ترڅو د خېلې مور شیدې و نه روي.

لغو (lágwa) ص.ښځ.م. ۱) پوچ، بې فایدې، چټې؛ ۲) ډلگ.

لغوړن (lağwaṛán) ص.نر.م. لوغړن، خیرن پیرن، غوړ پر و لوگجن؛ ۲) مج. بدنصیب، کم بخت، بدمرغه.

لغونه (lağū́na) نر.م. توتي، طوطي، شین ښکلی مرغه چې کږه زېړ یا سره منښوکه لري.

لغونی (lağū́náy) نر.ښځ.م. ۱) خاورین دېگی، کټوی؛ ۲) نر.م. یو ډول غرنی بوټی دی.

لغوي (luğawí) ص. لفظي، له لغت سره اړوند، لغت سره تړلی، د ژبې.

لغویت (luğawyát) نر.م. فضولیاو پوچه خبره، بېهوده عمل او حرکت.

لف (laf) ص.نر.م. پېچل، نغښتل؛ ۲) تړل؛ ۳) شامل.

**لفاظ** (lafā́z) ص. نر.م. ۱) خوش بیان، ښه الفاظ ویونکی؛ ۲) خبرلوڅ، قرتن.

**لفافه** (lefāfá) ښځ.م. ۱) خول، پاسنی پوښ؛ ۲) پاکټ؛ ۳) ظاهري سامان؛ ٤) کفن.

**لفټ** (lifṭ) نر.م. لفت، هغه ماشیني زانګو چې خلک پکې د ودانۍ لوړو پوړونو ته خیژي. راکوزیږي.

**لفظ** (lafz) نر.م. ۱) کلیمه، له خولې راوتونکې خبره؛ ۲) ټکی، توری، ګړ.

**لفظاً** (lafzán) نر.م. د لفظ په اعتبار، په لفظ سره.

**لفظي** (lafzí) ص. ۱) لفظ ته منسوب، قولي، چې ژمنه یې شوې وي؛ ۲) اصلي، حقیقي، لغوي.

**لف و نشر** (lafunášar) نر.م. تاوول او خپرول؛ بد. هغه ادبي صنعت چې شاعر په یوه مسره کې یو څو شیان یا صفات ذکر کړي وي او په بله مسره کې یې بیان او تشریح راغلې وي.

**لق** (laq) نر.م. ړچند، ړچیدونکی، کړپند.

**لقب** (laqáb) نر.م. د یو ځانګړي صفت له امله پر یو چا ایښودل شوی نوم.

**لقمه** (luqmá) ښځ.م. مړی، نوړی، ګپ، ګوله.

**لک** (lak) نر.م. ۱) نېغ، ولاړ، شخ؛ ۲) سل زره.

**لک پتي** (lakpatí) ص. لکي، د لکونو روپیو خاوند.

**لکچر** (likčár) نر.م. ۱) سبق، درس؛ ۲) وعظ؛ ۳) تقریر، ژبنۍ وینا.

**لکچرنوټ** (likčarnóṭ) نر.م. هغه یادداشت چې استاد یې شاګرد ته په ټولګي کې په ژبني ډول وایي او شاګرد، هغه یاداشت اخلي.

**لک څک** (lákcák) نر.م. ۱) غوږ څکی، ښځي نېغ، بوڅ؛ ۲) څیر، متوجه، ښه څیر.

**لکړ** (lakáṛ) نر.ج. تانګر، تانکر، بې پانو تانته.

**لکړه**[۱] (lakáṛa) ښځ.م ۱) امسا، عصا؛ ۲) د توغ ډاګه؛ ۳) چوکه، اوږده لښته؛ ٤) نرۍ وچه ونه.

**لکړه**[۲] (lakṛá) ښځ.م. شش کباب.

**لکړی** (lakaṛáy) ص. نر.م. نری او لوړ سړی.

**لکشوه** (lakašáwa) ښځ.م. لکښو، هوسۍ نرکشه، لکه ښویه.

**لکښو** (lakṣó) ښځ.م. و ګ. لکشوه.

**لک لک** (laklák) نر.م. ډینګ، لګ لګ، چغنی، د اوبو یو مارغه چې اوږده غاړه او اوږدې پښې لري.

**لکلمی** (láklamay) نر.م. لم غړی، لم ګنډی، لم ګوړی، لم ګونډی، لم چړ، لم ګوډی.

**لکمونی** (lakamū́nay) نر.م. و ګ. لکلمی.

**لکنت** (liknát) نر.م. ترټري توب، په خبرو کې د ژبې بندېدل، په نښتې ژبه خبرې کول.

**لک و بوک** (lákubū́k) نر.م. ښکته پورته، لک وڅک بوتا، بوڅبوڅکی.

**لکوټي** (likūṭí) ص. لږکوټي، لږ شان، لږ غوندې.

**لکوړی** (lakū́ṛáy) نر.م. یو ډول میوه ده.

**لکوک** (lakū́k) ص. نر.م. هغه اوښ چې د تګ په وخت کې یې پښې سره لګیږي.

**لکول** (lakawə́l) مص. مت. ۱) نېغول، شخول؛ ۲) نصب کول، په یو ځای کې یو شی درول.

**لکه** (lə́ka) اد. غوندې، ساري، ورته، په څېر.

**لکه** (laká) ښځ.م. خاپ، چاپ، داغ، عیب، تور.

**لکه دار** (lakadā́r) ص نر.م. داغدار، عیبناک.

**لکه ډکه** (lákaḍáka) ښځ.م. د لک څک مونثه بڼه؛ و ګ. لک څک.

**لکۍ** (lakáy) ښځ.م.ج. ۱) دحیواناتو د ډونګې له پاسه برخه؛ ۲) د مارغانو وروستنۍ بڼکې.

**لکیور** (lakaywár) نر.م. لکۍ مار، لکۍ لرونکی، لکۍ وال، هغه چې لکۍ وربورې وي.

**لکېدل** (lakedə́l) مص. ل. ۱) اوچتېدل، نېغ ودرېدل، ولاړېدل؛ ۲) نصبېدل.

**لکۍ وال ستوری** (lakəywālstóray) نر.م. لکيور ستوری، لکۍ والا ستوری.

**لګاو** (lagā́w) نر.م. ۱) کلک ګوزار؛ ۲) لګښت، خرڅ، مصرف.

**لګاوو** (lagāwū́) ص. نر.م. خرڅ کوونکی؛ ۲) جګړه جوړوونکی، فتنه راولاړوونکی، فتنه ګر.

**لګاوول** (lagāwawə́l) مص. مت. وهل ټکول، ډبول، سخت سخت وهل.

**لګاوه** (lagā́wa) ص. ښځ.م. فاحشه، کنجره.

**لګاوېدل** (lagāwedə́l) مص. ل. وهل خوړل، ډبېدل، وهل کېدل.

**لګت** (lagát) نر.م. دلرګيو د مردکي يوه لوبه ده.

**لګته** (lagáta) ښځ.م. و ګ. لغته.

**لګډ** (lagáḍ) نر.م. په غره کې د سېلاب لاره يا خوړګۍ چې کله کله اوبه لري او زياتره مهال يې نه لري.

**لګړ** (lagə́ṛ) نر.م. ۱) دشهين غوندې يو غټ ښکاري مارغه دی؛ ۲) لګر، خوړ.

**لګړه** (lagáṛa) ښځ.م. بادخورک، يوه مارغه دی.

**لګړک** (lagṛák) نر.م. لړزه، د کمزورۍ له امله زنګېدل.

**لګښت** (lagə́ṣt) نر.م. خرڅ، مصرف، استهلاک، تمويل، لګون.

**لګښتتوکي** (lagaṣttokī́) نر.ج. دلګښت توکي، د مصرف مواد، استهلاکي مواد.

**لګښتوال** (lagaṣtwā́l) نر.م. لګښت وال، مصرف کوونکی، استهلاکوونکی، مستهلک.

**لګښتي** (lagaṣtí) ښځ.م. د لګښت وړ توکي.

**لګ لګ** (lágláɡ) نر.م. ډينګ؛ و ګ. لک لک.

**لګن** (lagə́n) نر.م. لګڼ؛ ۱) د اورو آخښلو لوښی، ښانک؛ ۲) چلمچي؛ ۳) شمعنی، د شمعو بلولو لوښی.

**لګني** (laganí) ص. هغه پک چې سر يې ښخي بې ويښتو وي.

**لګور** (lagór) نر.م. يو ډول غرنی بوټی دی چې سره ګلان او اوږد ډنډر لري.

**لګول** (lagawə́l) مص. مت. ۱) نښلول؛ ۲) سمول؛ ۳) خرڅ کول؛ ٤) بلول؛ ٥) مقررول؛ ٦) لګيا کول؛ ۷) بلاربول؛ ۸) نصبول؛ ۹) کرل.

**لګون** (lagū́n) نر.م. لګښت، مصرف، خرڅ.

**لګونه اچونه** (lagawánaačawána) ښځ.م. ګډوډونه، لاندې باندې کونه، بې ځايه کونه.

**لګونی** (lagū́ṇay) نر.م. يو ډول بوټی دی چې د ځونډې په څېر سره ګلان کوي.

**لګوونی** (lagawū́nay) نر.م. پېلوڅی، هغه خس او خځلې چې د اور په لګولو کې کار ترې اخلي.

**لګه درګه** (lágadárga) ښځ.م. ۱) د ډېرو کسانو د منډې وهلو پر وخت د پښو آواز؛ ۲) منډه تره.

**لګيا** (lagyā́) ص. نر. ښځ.م. ۱) اخته، اړم، مصروف؛ ۲) پورې کول، لړل، منبل.

**لګېدل** (lagedə́l) مص. ل. ۱) بلېدل؛ ۲) سره جنګېدل؛ ۳) خرڅ کېدل؛ ٤) مقررېدل؛ ٥) نښتل ٦) زخم خوړل؛ ۷) بلاربېدل؛ ۸) اخته کېدل؛ ۹) نصبېدل؛ ۱۰) سمېدل؛ ۱۱) نيال کېدل.

**لل** (lal) نر.م. ۱) زور، طاقت؛ ۲) لوظ، قول، ژبه؛ ۳) احمق؛ ٤) ص. ګونګی؛ ٥) مص. لېيل، للل، د شاهدی او سلام سره يو ځای راځي؛ ٦) سپک-ورک، مات، ملامت؛ ۷) لاس پرسر.

**لل بل** (lálbal) ص. نر.م. حيران، پريشان، لل ګل.

**للمه** (lálma) ښځ.م. بې اوبو، للمي، باراني ځمکه.

**للمي** (lalmí) ص. باراني يا د للمي فصل.

**للو** (laló) ۱) مور خپل ماشوم ته ويده کولو لپاره وايي؛ ۲) ص. احمق، کم عقل، لوده.

**للوپتو** (lálūpatū) ښځ.م ۱) خوشامندګر، چاپلوس؛ ۲) کوڅه ډب؛ ۳) په مشکله ګوزاره کونه.

**للوز** (lalóz) نر.م. د مرغانو اوازونه، د مرغانو چغار.

**للون** (lalū́n) نر.م. ۱) ګوډ کونه، خبشاوه کونه؛ ۲) وينا، بيان؛ ۳) کوښښ.

**للونکی** (lalū́nkay) نر.م. ګواهي ورکوونکی، خبشاوه کوونکی، کوډګر.

**للونګر** (lalūngár) نر.م. للونوونکی، ګوډګر، خبشاوه کوونکی.

**للونول** (lalūnawā́l) مص. مت. خبشاوه کول.

**للونېدل** (lalaūnedál) مص. ل. خبشاوه کېدل.

**للی** (lálay) نر.م. ګړينګ، خنی، د پوزې غليظه ماده.

**للېدل** (laledál) مص. ل. ۱) ژبه بندېدل، ګونګی کېدل؛ ۲) وارخطا کېدل؛ ۳) ايله سر ښورول؛ ۴) کمزوری حرکت کول، ايله بيله خوځېدل؛ ۵) سپکېدل، ملامتېدل ورکېدل؛ ۶) لاس په سرېدل؛ بېزارېدل.

**لم** (lam) نر.م. ۱) د مېږو او پسونو پلنه لکۍ؛ ۲) ص. نر.م. ۱) ناراسته، لټ؛ ۲) اوږد غځېدلی؛ ۳) نر.م. ناره يي مرز، غېږيز مرز.

**لمار** (lmār) نر.م. د کوژدې دسمال.

**لماړی** (lmā́ṛáy) نر.م. سرسری ګنډ، غټ غټ ګنډ.

**لماړيستن** (lamāṛistán) نر.م. نماړي ستن، د برستنو ګنډلو غټه ستن.

**لماست** (lmāst) ص. نر.م. ۱) ملاست، اوږد غځېدلی يا ډډه اچولی؛ ۲) ويده؛ ۳) همبستر.

**لماستل** (lmāstál) مص.ل ۱) څملاستل؛ ۲) ډډه اچول، اوږد غځېدل؛ ۳) همبستر کېدل.

**لمانبام** (lmāṣā́m) نر.م. لمانبامی، مانبام.

**لمانځل** (lmānǰál) مص. مت. عبادت کول، نمانځل، عزت ورکول؛ ۲) پالل، ساتل؛ ۳) لمنځل.

**لمانځه** (lamānǰá) ښځ.م. ۱) تيرک، د ژرندې د پل محور، د ژرندې د پل د منځ سوری؛ ۲) د لمونځ مغيره حالت.

**لمانځي** (lmānǰí) ص. پاک، سترہ، نمانځي.

**لمبا** (lambā́) ښځ.م. لامبا، غسل، ځان پاکونه.

**لمباځی** (lambā́ǰáy) نر.م. چرچوبی، تشناب، د لمبا کوټه يا ډنډ، غسل خانه، لمبلځی.

**لمبر** (lambár) نر.م. ۱) نمبر، درجه؛ ۲) منصب، مرتبه؛ ۳) وار؛ ٤) ګڼه، شمېره، عدد.

**لمبل** (lambál) مص. ل. لامبل، غسل کول.

**لمبو** (lambó) ص. له حده زيات احمق، لومبړ.

**لمبور** (lambū́r) نر.م ۱) د کاريز لپاره نوی سوری؛ ۲) د کاريز کېندلو مېتی.

**لمبورچي** (lambū́rčí) ص. نر.م. هغه چې د کاريز لپاره سوری کني.

**لمبول** (lambawā́l) مص. مت. غسل ورکول، پاکول، د بل په بدن اوبه تېرول.

**لمبه** (lambá) ښځ.م. ۱) د اور شغله؛ ۲) تاو، ګرمي؛ ۳) يو ډول مرغی؛ ٤) يوراز ناروغي ده.

**لمبی** (lambáy) نر.م. لمبه، لمپه، يو ډول څراغ.

**لمبېدل** (lambedál) مص.ل. غسل کول، په اوبو ځان پاکول، په بدن اوبه تېرول.

**لمبېزن** (lambezán) ص. نر.م. لامبوزن، د لامبو ماهر.

**لمټک** (lamaṭák) نر.م. ۱) پست؛ ۲) ناراست سپی، لټ سپی.

**لمټی** (lamṭáy) ص. ږمنځ شوي ويښته.

**لمچټ** (lamčáṭ) نر.م. لمڅټ، غليواز، تپوس.

لم چړ (lamčáṛ) نر.م. لم څوکی، لکلمونی، د لم د پاسه وره لکۍ، د پسه، مېږې د لم لکۍ.
لمچه (lamčá) ښځ.م. د سونګ یو ګېډی لرګي.
لمڅټ (ləmcáṭ) نر.م. وګ. لمچټ.
لمڅه (lamcá) ښځ.م. ټپوس، یو راز مارغه دی.
لمڅی (lamcáy) نر.م. ۱) وګ. لمڅه؛ ۲) نیمڅی، کراسته، دوړی، تغر؛ ۳) یو ډول ښکاري مرغه؛ وګ. لمڅه.
لمڅي ګر (lamcigár) نر.م. کراسګر، کراستګر، لمڅي جوړوونکی.
لمحه (lámhá) ښځ.م. لحظه، ساعت، لږ وخت.
لمدبل (lamdabál) نر.م. لندبل، رطوبت، نم.
لمدول (lamdawə́l) مص.مت. لوندول، خیشتول.
لمده (lamdá) ص.ښځ.م. لنده، لونده، خبشته.
لمده بل (lamdabál) نر.م. لنده بل. ۱) نګولی، کتغ، سالن؛ ۲) رطوبت، لوندوالی.
لمډی (lamḍáy) نر.م. د کوناتو د پاسه هډوکی.
لمر (lmar) نر.م. ۱) نمر، نور، آفتاب؛ ۱) غارمه.
لمرپرېواته (lmarprewātá) نر.م ۱) دلمر پرېوتو وخت، ماښام؛ ٤) لوېدیځ، مغرب، قبله.
لمرتندره (lmartándrá) ښځ.م. لمر نیونه، د لمر تندر نیونه، کسوف.
لمرټګ (lmarṭág) نر.م. ټکنده غرمه، استوا.
لمرڅرک (lmarcrák) نر.م. لمرڅیره، لمر څرېکه، لمرخاته، د لمر راختنه.
لمرڅرکی (lmarcrákay) نر.م. ۱) پېتاو، لمرته مخامخ. ۲) یو ډول سپین مار دی چې د مارانو پاچا بلل کېږي.
لمرڅرېکه (lmarcríka) ښځ.م ۱) د لمر وړانګه؛ ۲) وګ. لمرڅرک.
لمرڅیره (lmarcirá) ښځ.م. لمرڅرک، د لمر راختنه.

لمرخاته (lmarxātá) ص. ۱) لمرختیځ، مشرق؛ ۲) د لمر راختو وخت؛ ۳) لمرڅرېکه.
لمرختیځ (lmarxatíʒ) ص.نر.م. مشرق.
لمرغوندال (lmarğwandə́l) نر.م. شمسي نظام، شمسي منظومه.
لمرګلی (lmargwálay) نر.م. لمر ګل، کافر ګل، نمرګلی، نمرپرست.
لمرلوېدل (lmarlwedə́l) مص. ل. لمر لوېدۀ، لمر پرېواتۀ، دلمر پرېوتل.
لمرلوېدۀ (lmarlwedá) ښځ.م. ۱) لوېدیځ، مغرب؛ ۲) لمر پرېواته.
لمرمخی (lmarmáxay) ص.نر.م. ښکلی، نمر مخی، ښایسته، حسین.
لمرمخې (lmarmáxe) ښځ.م. د لمر په څېر سپینه او ښکلې، ډېره ښایسته.
لمرنښان (lmarnıṣā́n) نر.م. د خپلواکۍ د لمر نښان لنډون، د افغانستان تر ټولو لوړ افتخاري نښان.
لمرنی (lmaranáy) ص. نر.م. لمریز، نمریز.
لمری (lmaráy) ص. نر.م. هغه څه چې په لمر وچ شوي وي، په لمر وچ شوی.
لمریز (lmaríz) ص. نر.م. شمسي، نمریز.
لمریزلېږدي (lmarízleẓdí) ښځ.م. لمریز هجري (کال، کلیز) هجري شمسي.
لمړ (lamáṛ) نر.م. د دوو غرونو تر منځ لویه کنده.
لمړزیز (lamṛazíz) نر.م. اول ځل، لمړنی.
لمړنی (lumṛanáy) نر.م. (ښځ. لمړنۍ) لومړنی، رومبنی، تر ټولو وړاندینی، مخکینی.
لمړۍ (lmaṛáy) ښځ.م. کپ، نواله، ګوله، خمڅه.
لمس (lams) نر.م ۱) ګوتې وروړنه، یو شي ته لاس وروړل؛ ۲) وګ. لمسون.

**لمسول** (lamsawә́l) مص. مت. ۱) پارول، آماده کول، لمسون کول؛ ۲) يو شي ته لاس وروړل.

**لمسون** (lamsū́n) نر.م. لمس، لمسه، تحريک، پارول، لمسول.

**لمسونی** (lamsawū́nay) نر.م. لمسونکی، تومبونکی، تحريکوونکی.

**لمسوني** (lamsawūní) نر.ج. لمسوونکي. پاروونکي، تحريکوونکي.

**لمسه** (lámsá) ښځ.م. لمس، تحريک، پارونه.

**لمسی** (lmasáy) نر.م (ښځ. لمسۍ) نمسی، نوسی؛ د زوی يا د لور زوی.

**لمسۍ**[1] (lamsә́y) ښځ.م. د اسپې په ملا باندې د تړلې شوې پټۍ لاندېنۍ پسته برخه.

**لمسۍ**[2] (lmasә́y) ښځ.م.ج. د (لمسی) ښځينه، وګ. لمسی.

**لمسېدل** (lamsedә́l) مص. ل. پارېدل، تحريک کېدل، بدې ته آماده کېدل.

**لمعان** (lamʕā́n) نر.م. ځلند، ځلاند، بل.

**لمغړه** (lamğāṛa) ښځ.م (ج. لمغړې) ډېره تلوسه، ډېره لېوالتيا، ډېره مينه ښودل.

**لمغړی** (lamğaṛáy) ص. نر.م. چلباز، غوره مال.

**لمغړی** (lamağṛә́y) ښځ.م.ج ۱) ژړا فرياد، زاري منت، واوېلا، چغې سورې؛ ۲) وګ. لکمونی.

**لمغړې** (lamğaṛé) ښځ.م. (م. لمغړه) وګ. لمغړه.

**لمغوټه** (lamğū́ṭa) ښځ.م. لاس تړلی.

**لمګنډی** (lamganḍáy) نر.م. وګ. لکلمی.

**لم ګوړی** (lamgū́ṛáy) نر.م. ۱) د لم تصغير؛ ۲) وګ. لکلمی.

**لم ګونډی** (lamgū́nḍáy) نر.م. وګ. لکلمی.

**لمن** (lamán) ښځ.م. ۱) د کميس لاندېنۍ ځوړنده برخه، ځولۍ؛ ۲) د يو شي يا ځای غاړه، ژۍ.

**لمن انځور** (lamananǰór) نر.م. حاشيه ښکلل، شنډيزه ښکلا.

**لمنځ** (lmanǰ) نر.م. ۱) ستاينه، تعريف، درناوی؛ ۲) ص. يو لاسی، هغه چې يو لاس لري.

**لمنځل** (lmanǰә́l) مص.مت. وګ. لمانځل.

**لمنځه** (lmánǰa) ښځ.م. د تل شنو ونو د کورنۍ د يوې غړنۍ ونې نوم.

**لمن ګۍ** (lmangә́y) ښځ.م.ج. يو ډول ګنډون دی.

**لمنليک** (lamanlík) نر.م. پايليک، پايښور، حاشيه، پاورقي.

**لمنليکنه** (lamanlikána) ښځ.م. پايښور ليکنه، حاشيه ليکنه.

**لمنليکونکی** (lamanlikū́nkay) فا. نر.م. پايلنه ليکونکی، حاشيه ليکونکی، محشي.

**لمنليکونه** (lamanlikū́na) نر.ج. (د لمنليک جمع) پايښورونه، حاشيوي يادښتونه.

**لمنور** (lamanwár) نر.م. لمنيز، محتشي، لمن لرونکی، دامن دار.

**لمنيز** (lamaníz) نر.م. لمنور، لمن لرونکی.

**لمور** (lamawә́r) ص.نر.م. (ښځ. لموره) ۱) لم لرونکی؛ ۲) مج. د غټو کوناتو خاوند.

**لموره** (lmoṛá) ښځ.م. ښډه، وچ وابنه.

**لمونځ** (lmū́nǰ) نر.م. نمونځ، د مسلمانانو عبادت.

**لمونځغاړی** (lmūnǰgā́ṛay) نر.م. لمونځ کړونی، لمونځ کوونکی، لمونځ ګزار، مونځ ګزار.

**لمونځ کړونی** (lmūnǰkṛū́nay) نر.م. وګ لمونځغاړی.

**لمېساند** (lmesā́nd) نر.م. کښونکی، ليکونکی، مسوده ليکونکی، رونويس.

**لمېسل** (lamesә́l) مص. ل. لمېسنه، مسوده کول؛ ۲) ليکل، تحرير کول، کښل، ښکل.

لمېسنه (lmesána) ښځ.م. لیکنه، آره لیکنه، مسوده، تسوید.

لمېسه (lmesá) ښځ.م. مسوده، تسوید، لیکنه، لمېسنه.

لنبره (lanbára) ښځ.م. بې فرشه ځمکه.

لنځي (lanǰí) ښځ.ج. منت زاري، فریاد، خواستونه.

لنده بل (landabál) نر.م. وګ. لمدبل.

لندول (landawə́l) مص.مت. وګ. لمدول.

لندی (landáy) نر.م. له سیند نه ویستل شوې ویاله.

لنډ (lanḍ) ص. نر.م ۱) مختصر، کوتاه، د اوږد ضد؛ ۲) نژدې، نېږدې، قریب.

لنډاک (lanḍā́k) ص. نر.م. لنډپاری، بې فکره، تنګ نظری، لنډفکره، ناعاقبت اندېش.

لنډاکتوب (lanḍāktób) نر.م. کوتاه نظري، بې فکري، تنګ نظري.

لنډالواکی (lanḍālwā́kay) نر.م. لنډ لیدی، لنډ وینی، لنډ وین، لنډ نظری.

لنډالواکي (lanḍālwākí) ښځ.م. لنډ لیدي، لنډ ویني، لنډ نظري.

لنډان (lanḍā́n) ص.نر.م. کوچنی، ماشوم، هلک.

لنډاندی (lanḍā́nday) نر.م. لنډاک، پوهلنډی، لنډ فکری.

لنډاندي (lanḍandí) ښځ.م. لنډاکي، لنډ فکري.

لنډباوری (lanḍbā́waray) نر.م. ژرباوری، ساده.

لنډباوري (lanḍbāwarí) نر.م. ژرباوري، ساده ګي، ساده توب.

لنډ بزری (lanḍbazáray) نر.م. وګ. شاهین.

لنډپاری (lanḍpā́ray) ص. نر.م. ۱) د تنګ زړه خاوند، زر غوسه کېدونکی؛ ۲) مطلب آشنا؛ ۳) لنډ نظری، تنګ نظری.

لنډپوهی (lanḍpóhay) نر.م. پوهلنډی، ساده.

لنډ توب (lanḍtób) نر.م. لنډوالی، مختصروالی.

لنډ تېرمهال (lanḍtermahā́l) نر.م. لنډه ماضي، قریبه ماضي.

لنډځوابی (lanḍǰawā́bay) نر.م. ژرځوابی، غوڅ ځوابی، حاضر جواب.

لنډر (lanḍár) ص.نر.م. وګ. لنډی.

لنډستاینوم (lanḍstāynū́m) هغه ستاینوم چې تر خپل ستایلي د مخه راځي لکه سور کتاب.

لنډغر (lanḍağár) ص. نر.م. ۱) لکی پرې کړی؛ ۲) لنډهر، بې شرمه؛ ۳) آواره، ابله ګرد.

لنډفکره (lanḍfíkra) نر.م. وګ. لنډاک.

لنډفکری (lanḍfíkray) نر.م. تنګ نظری.

لنډکړی (lanḍkáṛay) نر.م. بې واسطې مفعول.

لنډکړی پېر (lanḍkaṛaypér) د بې واسطې مفعول حالت، صریح مفعول.

لنډکی (lanḍakáy) ښځ.م. د کارېز څاه؛ ۲) ډېر لنډ، ډېر مختصر.

لنډګروهی (lanḍgróhay) نر.م. تنګ وینی، تنګ نظری، لنډ لیدی، تنګالواکی، متعصب.

لنډګروهي (lanḍgrohí) ښځ.م. تنګ ویني، تنګ نظري، لنډ لیدي، تعصب.

لنډګروهیز (lanḍgrohíz) نر.م. تنګ نظرانه، تعصبي، متعصبانه.

لنډګنډ (lanḍgánḍ) نر.م. ۱) سمدواره، په هغه ساعت؛ ۲) ډېر نژدې؛ ۳) ژر؛ ۴) مختصر.

لنډ لیدی (lanḍlíday) نر.م. لنډ نظری، چې لرې نه شي لیدای.

لنډلیک (lanḍlík) نر.م. خلاصه لیکنه، تونده لیکنه، ژر لیکنه.

لنډمنګی (lanḍmángay) نر.م. لنډ عمری، لنډ ژوندی، کم پایښتی.

**لنډمهالی** (landmahā́lay) دلږ وخت لپاره، موقتي.

**لنډواټنی** (landwāṭánay) نـر.م. لنډ واټن (نرينه نوم لپاره لکه توغندی، توپ...)، لنډمزلی.

**لنډور** (landwár) ص. نر.م ۱) لنډ پاری، لنډ فکره؛ ۲) لنډه ور، لويه لنډه لرونکی.

**لنډوکی** (landū́kay) نر.م. لنډکی، ډېر لنډ، لنډی، د لنډ مصغر.

**لنډوکي** (landūkí) ښـځ.ج. لنډکي لنډکي دستکونه.

**لنډول** (landawə́l) مص.مت. کمول، مختصرول؛ ۲) فيصله کول؛ ۳) نيژدې کول؛ ٤) مزل کول.

**لنډوين** (landwín) نـر.م. لـنډوينی، لنډ لـيـدی، (انسان، عينک).

**لنډه** (lánda) ښـځ.م. د ملا لاندېنۍ برخه، ډونګه، ډينګله، کونه ډوب؛ ۲) د لنډ مؤنث.

**لنډه کا** (landaká) ښځ.م. قاز، زانه.

**لنډی** (landáy) ص.نر.م. ۱) لنډ، د اوږد پرعکس؛ ۲) مج. لنډفکره.

**لنډېری** (landeráy) نر.م. يو ډول غشی دی.

**لنډيز** (landíz) نـر.م. لـنډون، نچـوړ، اختـصار، خلاصه.

**لنګرڅی** (langarʒáy) نر.م. ډکه (سوات).

**لنګری** (langaráy) ښـځ.مج. ننګـری، اونګ، هاونګ.

**لنګور** (langór) نر.م. شادو، بيزو، يو ډول غټ بيزو.

**لو** (lo) نر.م. قسم، سوګند، لوړه.

**لوات** (lawā́t) نر.م. پرانيستی، خلاص.

**لواتل** (lwātə́l) مص.مت. پرانيستل، بېرته کول.

**لوبډله** (lobdála) ښځ.م. د لوبې ډله، د لوبې ټيم.

**لوبغاړی** (lobğā́ray) نر.م. ورزشکار، سپورت مين.

**لوبغالی** (lobğā́lay) نـر.م. ورزشځای، ورزشځی، د سپورت محل.

**لوبوبه** (loboba) ښځ.م. نري مني، مذي.

**لوبول** (lobawə́l) مص.مت. ۱) په لوبه کې له ځان سره شريکول، لوبه ورزده کول؛ ۲) مج. غولول، تېرويستل.

**لوبولی** (lobawə́lay) مف.نر.م. ۱) په لوبه کې له ځان سره شريک کړی، پر لوبه پوه کړی؛ ۲) مج. غولولی، تېرويستلی.

**لوبيځ** (lobíʒ) نـر.م. ننـدارځی، د ننداري ځای، د تمثيل ځای.

**لوبېدل** (lobedə́l) مص.ل. ۱) په لوبه کې شريکېدل، پر لوبه پوهېدل؛ ۲) غولېدل، تېروتل.

**لوت** (lut) نر.م. تشخيص، پېژندنه.

**لوتل** (lūtə́l) نر.م. تشخيصول، پېژندل.

**لوټ** (lwaṭ) نر.م. سبک، متره، ځواک، تاب.

**لوټ تالان** (lūṭṭālā́n) نـر.م. چـور و تـالان، چور چپاول.

**لوټمار** (lūṭmā́r) نر.م. ۱) لوټ تالان، چور چپاول؛ ۲) شوکمار، تالانګر؛ ۳) لوټې ميده کوونکی، لوټې ماتوونکی.

**لوټن** (lūṭə́n) نر.م ۱) لوټ پر لوټ اوښتونکی، لاندې باندې کېدونکی؛ ۲) لوټې (کلوخ) لرونکی.

**لوټېری** (lūṭeráy) نـر.م. لـوټوونکی، لـوټمار، تالانګر، چپاولګر.

**لوټېری** (lūṭeráy) ښځ.ج. لوټوونکي، لوټماره، چپاولګره.

**لوڅ** (lūc) نـر.م. ۱) لغـړ، نيمه بربنډ؛ ۲) مج. تش لاسی، بېوزله، غريب؛ ۳) يوه لوبه ده.

**لوڅ پوڅ** (lūcpū́c) ص.نر.م. لوڅ لغړ، لـوڅ لپړ، بالکل لـوڅ بېخـي بربنډ، بـرمنډ، لنډلغړ.

**لوڅ پوڅ** (locpóc) ص.نر.م. اوړېدونکی راوړېدونکی، لوټ په لوټ اوښتونکی، ناکرار، ناارام.

**لوخکه** (locáka) ښځ.م. نانځکه، نېنځکه، ناوکۍ، ګوډۍ.

**لوخوالی** (lūcwā́lay) نر.م. لوڅتوب، لوڅتیا، بربنډوالی، لغړوالی.

**لوخول** (lūcawə́l) مص.مت. بربنډول، لغړول، ښکاره کول.

**لوخي پوخي** (locípocí) ص.ښځ.م.ج. لاس و پښې وهل، ناکراري، پرلپسې مبارزه، زاري.

**لوخېدل** (lūcedə́l) مص.ل. بربنډېدل، لغړېدل، ښکاره کېدل.

**لوخېدل** (locedə́l) مص.مت. لوخي پوخي کول، اوړېدل رااوړېدل، لاس وګرېوان کېدل.

**لوخزه** (luxā́za) ښځ.م. لوخړه، ډډوزه، غروسکه.

**لوراند** (lawrā́nd) نر.م. ډېر لورېدونکی، ډېر زړ: سواند، ډېر مهربان.

**لورښود** (lorṣód) نر.م. لوري ښوونکی، جهت ښودونکی.

**لورنی** (loranáy) نر.م. د لور (خوا) اړوند، د لور متعلق (په نرینه نوموکې).

**لورنۍ** (loranə́y) ښځ.ج. د لور اړوند، د لور متعلق (په ښځینه نوموکې).

**لورورکی** (lorwrákay) نر.م. لارورکی، ورکلاری، چې لار یې ورکه کړې وي یا لاره ورکوي.

**لورین** (lawrín) نر.م. زړه سواند، مهربان، مشفق.

**لوری ورکول** (lóraywarkawə́l) مص.مت. لور ښوول، لور ښوونه.

**لوړاوی** (lwaṛā́wáy) نر.م. لوړونه، لوړونګ، غتاوی، درناوی، لمانځنه.

**لوړپوړیز** (lwaṛpoṛíz) نر.م. جګ پوړیز، لوړ چتی.

**لوړتیاپال** (lwaṛtyāpā́l) نر.م. برلاسوال، برلاسی غوښتونکی، لوړتیا غوښتونکی.

**لوړتیاپالنه** (lwaṛtyāpālə́na) ښځ.م. لوړتیا واله، لوړتیا غوښتنه، تفوق طلبي.

**لوړتیایي** (lwaṛtyāyí) ښځ.م. د لوړتیا اړوند، ارتقایي.

**لوړښوونځی** (lwaṛṣowanǰáy) نر.م. لیسه، عالي ښوونځی، عالي مکتب.

**لوړل** (luṛə́l) مص.مت. ۱) له ځایه ښېلېدل، جلا کېدل، درووند څیز له ځایه ښوروېدل؛ ۲) اړول، چپه کول؛ ۳) بارېدل؛ ٤) نړېدل.

**لوړه** (lóṛa) ښځ.م. سوګند، قسم، حلف، ژمنه.

**لوړه** (luṛá) ښځ.م. بې غېږه، ناسته اواز، ډډ غږ.

**لوړلیک** (loṛlík) نر.م. سوګند لیک، سوګند نامه، تحلیفنامه.

**لوز** (loz) نر.م. لینده، غورکمانه.

**لوستل** (lostə́l) مص.مت ۱) نوستل، شیندل، بادول؛ ۲) لولول، ویل، قرائت کول؛ ۳) لیږدول.

**لوستلیکی** (lwastlíkay) نر.م. د لوست کتاب، درسي کتاب.

**لوستوال** (lwastwā́l) نر.م. د لوست څښتن، د مطالعې خاوند، لوستونکی.

**لوښتل** (loṣtə́l) مص.مت. لوړل، پسې لیږدېدل، پسې اوښتل.

**لوښتنه** (loṣtə́na) ښځ.م. چپه کونه، اړونه.

**لوښلونې** (loṣlū́ne) ښځ.م. لوښنې اوبه، کنګالي، د لوښو د کنګالېدو اوبه.

**لوښنپېر** (loṣanpér) نر.م. لوښنین پېر، لوښنیز پېر، ظرفي حالت، آلي حالت.

**لوښه ییز** (loṣayíz) ښځ.م. لوښني، عادتي، خصلتي.

**لوښیز** (loṣíz) نر.م. لوښني، لوښنیز، لوښنین، آله یي، آلي.

لوښينكړ ( loṣínkar ) ظرفي فعل.
لوښيننوم ( loṣinnūm ) نر.م. لوښيز نوم، اله نوم.
لوښي ولنه ( loṣiwlə́na ) ښځ.م. لـوښي پرېولنه، لوښي مينځنه.
لوغ ( loğ ) نر.م. لوشل، رودل (چوشيدن).
لوغړن ( lūğarán ) نر.م. لغوړن ۱) په لوګيو تور؛ ۲) خيرن پيرن، غوړپړ؛ ۳) بد نصيب.
لوغړول ( lūğrawə́l ) مـص. مـت. تـوغـړول، پـه خاورو او ايرو كې ښملول او اړول را اړول.
لوغړېدل ( lūğredə́l ) مص. ل. توغـړېدل، په خاورو او ايرو كې اړول را اړول كېدل.
لوغزه ( lwáğaza ) ښځ.م. لنګه غوا يا چېلۍ.
لوغس ( láwğas ) ص.نر.م. لوغسى، وړ سترګى، اروا وړي، حريص، بخن، سترووړى.
لوغسى ( loğásay ) نر.م. مچ، مګس.
لوغسۍ ( lwağasáy ) ص. ښځ. م. كتاره، هغه لنګه ښاروۍ چې لوشلو ته څوک ځان ته نه پرېږدي.
لوغل ( lwağál ) مص. مت. لوشل، لوېشل، لوېغل.
لوغول ( lūğawə́l ) مص. مت. ۱) ربړول، په تودو ايرو كې توغلول؛ ۲) انګار تازه كول؛ ۳) څه خبره يا معامله جاري ساتل؛ ٤) كړول، تزنول.
لوغونه ( lwağū́na ) ښځ.م. لوغۍ، ډېګچى، غوا لوشى، ډېبى، دونى، دكى، ګودى.
لوغۍ ( lwağáy ) ښځ.م. غوالوشى.
لوغېدل ( luğedə́l ) مص. ل. په تودو ايرو توغلېدل، پخېدل؛ ۲) ورو ورو بلېدل؛ ۳) څـه معامله يا خبره جاري ساتل كېدل؛ ٤) كړېدل، تزنېدل.
لـوک ( lok ) نـر.م. ۱) لـوګ، پنځـه كلـن اوښ؛ ۲) انسان، بشر؛ ۳) عالم، ارواح؛ ٤) نرى.
لوكاټ ( lawkā́ṭ ) نر.م. يو ډول ژېړ رنګې مېوه.
لوكړ ( lokár ) نر.م. لوګړ، يو ډول غاښور يا منداوو.

لوكېدل ( lūkedál ) مص. ل. سوځېدل، لوګى كېدل.
لوګ[1] ( log ) نر.م. لوګه، صحرا، بيابان، شاړه.
لوګ[2] ( lawg ) نر.م. بې فايدې، فضول.
لوګر[1] ( lawgár ) ص.نر.م. لوګرى، لوى، رهبونكى.
لوګجن ( lūgján ) ص. نـر.م. لوګن، لوګي وهلى، په لوګي تورشوى.
لوګر[2] ( lū́gar ) نـر.م. ۱) يو ډول بوټى دى چې په سركې غونډارى لري؛ ۲) يو ډول ځناور دى.
لوګړ ( logár ) نر.م. و ګ. لوكړ.
لوګن ( lūgán ) ص.نر.م ۱) و ګ. لوګجن؛ ۲) لوګى كوونكى، هغه شى چې ډېر لوګى كوي.
لوګول ( lūgawə́l ) مص. مت. لوګى كول، لوګى ويستل؛ ۲) بلـول؛ ۳) ځـارول؛ ٤) تباه كـول؛ ٥) اوازه خپرول.
لوګه ( lóga ) ښځ.م. لوګ، شاړه او بې حاصله ځمكه.
لوګى ( lū́gáy ) نر.م. دود، لوخړه، ډډوزه.
لوګى خانه ( lūgayxānā́ ) ښځ.م. دودخانه، مورى، لوى، د لوګي دوتو لاره، بخوره.
لوګېدل ( lūgedál ) مص. ل. لـوګى كېدل، لوګى وتل؛ ۲) بلېدل؛ ۳) ځارېدل؛ ٤) تباه كېدل.
لوګيز ( lūgíz ) نر.م. لوګن، لوغړن، په لوګي رنګ، دودجن.
لولپاند ( lūlapā́nd ) ص. نر.م. لولپان، لولپه.
لولپه ( lū́lapa ) ص. نـر. ښځ.م. لولپاند، ۱) ستي پتي، بالكل سوى؛ ۲) د لېونتوب تر حده د يو شي لېوال.
لولكۍ ( lūlakáy ) ښځ.م. بورا، پروانه، ډبۍ؛ ۲) اوره د بوري سره ګډوي او په غوړو كې يې سره كوي.
لولكى ( lolakáy ) نر.م. كلوله لرګى.
لولليكى ( lwallikáy ) نـر.م. لـېكـچـر نـوټ، لكچر نوت.

لولمن (lolamán) ښځ.م. ۱) پراخه لمن؛ ۲) مج. سخاوت، مهرانه.
لولنګر (lawlangár) ص. دربدر، پـورجنی، فضول خرڅ، عیاش.
لولنګري (lawlangarí) ښځ.م. دربدري، پورجني، اواره ګي.
لولو[1] (lūlū́) نـر.م. توره توته چې په فصـل کې د مرغیو د ویرولو لپاره ځوړندوي.
لولو[2] (loló) یو ډول ښځینه دمټ ګاڼه، بازوبند.
لولوباتو (lólobātó) ښځ.م. د نجونو یو ډول لوبه ده.
لولور (lawlór) نـر.م. ۱) فصل ریبنه، لـو کـونه؛ ۲) کار، خواري؛ ۳) ص. تباه، برباد، تالا.
لولول (walawə́l) مص. مت. درس ورکول، په بل لوست کول، لوست ورزده کول.
لولونکی (lwalawū́nkay) نر.م. مدرس، معلم، ښوونکی، درس ورکوونکی، استاد.
لولی (loláy) ښځ.م. ۱) کاسبره، کچنی، فاحشه، للی؛ ۲) ډمه.
لوماشین (lawmāšín) نر.م. د لوماشی، د ریبنې ماشین.
لومبړ (lūmbáṛ) نر.م. لمبړ؛ ۱) د ګیدړ په څیر یو ځناور دی؛ ۲) ص. کم عقل.
لومړنی (lumṛanáy) نـر.م. اول، اولنی، مخکې، تر نورو دمخه.
لومړی (lumṛáy) نـر.م. اول، اولـنی، مخکې، تر نورو دمخه.
لومړیتوب (lūmṛitób) نـر.م. مخکېوالی، وړاندېوالی، قدامت، اولویت، اولیت.
لومکه (lūmáka) ښځ.م ۱) لومه، لوینه، غنداری؛ ۲) دام؛ ۳) کړکی، کوړکی.
لومني (lomaní) ښځ.م. کبر، لویي، غرور.
لومه (lū́ma) ښځ.م. لومکه، لمکه، دام، لومی.
لومی (lū́máy) ښځ.م. و.ګ. لومه.
لونټه (lū́nṭa) ښځ.م. لکی پرېکړې، بونډې.
لونټی مونټی (lū́nṭaymū́nṭay) نر.م. غوږونه او لکی پرېکړې، کونډې مونډې.
لوند (lū́nd) نر.م. خېشت، زېمناک، نمناک.
لوندخېښت (lūndxḗšt) ص.نر.م. بېخي لوند، بالکل لوند، لوند خوشت، تول لوند.
لوندمېچ (lū́ndmeč) نر.م. د لنده بل مېچوونکې اله، نم سنجوونکی.
لوندوالی (lūndwā́lay) نر.م. خېشتوالی، رطوبت.
لوندول (lūndawə́l) مص. مت. لـوندونه، لندول، لمدول، خېشتول، خوشتول.
لونده (lwandá) ښځ.م. یو ډول غرنی ونه ده.
لوندېدل (lūndedə́l) مص. ل. لمدېدل، خېشتېدل.
لونډ (lawánḍ) نـر.م. ۱) مجـرد؛ ۲) خـوشکی، فضول، اوبې کاره سړی.
لونډتوب (lawanḍtób) نر.م. ۱) لونډي، لونډتیا، مجردي؛ ۲) بېکلوي.
لونډړ (lawanḍár) نـر.م. آواره ګـرد، بې فایدې ګرځېدونکی؛ ۲) یو ډول خوشبو تېل.
لونډه (láwanḍa) ښځ.م. ۱) مجرده ښځه؛ ۲) آواره ګرده، ګشتۍ ښځه.
لونډی (lawanḍáy) نر.م. لونډتوب.
لونګ (láwáng) نر.م. یو ډول خوشبودار بوټی او د هغه دانې دي.
لونګی[1] (lungáy) ښـځ.م. ۱) پګړی، پټکی؛ ۲) وریښمین دستار، د اوږې وریښمین شال.
لونګی[2] (lawangáy) ص. ښځ.ج. یو ډول ښه بوی والا وریجې.

**لونګین** (lawangín) نر.م. د لونګو امېل.

**لونل** (lwanál, lūnál) مص. مت. ۱) شیندل، نولل، نوستل، پاشل؛ ۲) بادول، درمند بادول.

**لونه** (lūna) ښځ.م. خری، شیني، ښنزه، ننکۍ، ښلونه، د یوې ننکۍ نوم دی.

**لونی** (lonáy) ښځ.م. شهادت، ګواهي.

**لونی** (lūnáy) ص. نر.م. بخښوتکی، بخښبانده

**لونېدل** (lūnedál) مص. ل. نستلی کېدل، شیندلی کېدل نوستلی کېدل.

**لوڼ** (lūṇ) نر.م. مالګه، سوډیم کلورایډ.

**لووچه** (lowáča) ښځ.م. لویه وچه، براعظم.

**لوورځ** (lowrā́ǰ) ښځ.م. ورځلوی، قیامت، حشر، د حشر ورځ.

**لووړی** (lowáṛay) نر.م. ۱) هغه څه چې وریاندې قسم خوړل کېږي؛ ۲) ص. بزرګ او ښه سړی.

**لوول**[۱] (lawawál) مص.مت. ۱) لوکول، فصل ریبل؛ ۲) غورځول، اچول.

**لوول**[۲] (lowál) مص. مت. ۱) شاهدي ادا کول؛ ۲) لوشل (دوشیدن).

**لوولور** (láwulor) نر.م. د غنمو او نورو د لوکولو کار و وخت.

**لووی** (loway) نر.م. شاهد، ګواه، لیدونی.

**لووار** (luwā́r) نر.م. پښ، آهنګر، لوهار.

**لوه**[۱] (lūh) ښځ.م. و.ګ. لوهه.

**لوه**[۲] (lawá) ښځ.م. ۱) اوبه زاوهل، زېمناک، زا؛ ۲) د پسونو یو ډول ناروغي ده.

**لوهټ** (lūháṭ) نر.م. مرغ زرین، لوېټ.

**لوهړ** (lawháṛ) نر.م. یو ډول بې مېوې ونه ده چې نارنجي ګلان نیسي.

**لوهړه** (lūháṛa) ښځ.م. و.ګ. لوخړه.

**لوهه** (lū́ha) ښځ.م. اشتها، لېوالتیا، غوښتنه.

**لوی**[۱] (láway) نر.م. ۱) د توري خوله؛ ۲) لوګر، ریبونکی.

**لوی**[۲] (lūy) نر.م. ۱) غټ، ستر، مشر؛ ۲) ارت، لوړ، دنګ؛ ۳) اوږد؛ ۴) پېهر.

**لوی** (lawáy) ښځ.م. ۱) د لوګرۍ مزدوري؛ ۲) موری، د پخلنځي روزان.

**لوې** (lawé) ښځ.م. لنګه، ښځینه څاروی.

**لوېټ** (lweṭ) نر.م. مرغ زرین، لوهټ.

**لوی چاری** (loyčā́ray) نر.م. سترچاری، څانخوښي، کلانکار.

**لوی څارنوال** (loycāranwā́l) نر.م. مدعي العموم، دادستان.

**لوی درستیز** (loydrastíz) نر.م. سربولندوی، اعلی قوماندان، د عمومي حرب رئیس ارکان.

**لوېدل**[۱] (lwedál) مص. ل. ۱) غورځېدل، پرېوتل، ۲) کمېدل، لږېدل؛ ۳) فریاد کول، للوز کول.

**لوېدل**[۲] (lawedál) مص.ل. لوکېدل، ریبل کېدل.

**لوېدیځ** (lwedī́ǰ) نر.م. غرب، نمرپرېواته، قبله.

**لوېدیځواله** (lwedīǰwā́la) ښځ.م. لوېدیځپالنه، غرب پالنه، غربیت.

**لوی ډنډ** (loyḍánd) نر.م. جهیل.

**لوی رنځ** (loyránǰ) نر.م. محرقه، توره تبه.

**لوی زړی** (loyzáṛay) نر.م. لویه ګرګه، زړور، سخي.

**لوېږند** (lwéżánd) نر.م. ۱) لوېدل؛ ۲) تیارخور، مفتخور، انګل، طفیلي.

**لوېږندپوهنه** (lweżándpohána) ښځ.م. د لوېږند (پرازیټ) پوهنه، طفیلي پېژندنه.

**لوېشت** (lwešt) نر.م. لېشت، د غټې او خچې ګوتې ترمنځ فاصله.

**لوېشتکی** (lweštákáy) نر.م. لېشتکی، لنډی، د یوې لوېشت په اندازه، لنډی سړی.

**لوښتول** (lweštawál) مص. مت. په لوښتو کول، لښتول، د لوښتو په ذریعه اندازه کول.

**لوښتېدل** (lweštedál) مص. ل. په لوښتو کېدل، لښتېدل، د لوښت په ذریعه ناپ کېدل.

**لوښتینک** (lweštínák) نر.م. تیتکی، د یوې لوښت په اندازه.

**لوښل** (lwešál) مص. مت. و گ. لوشل.

**لویښت** (loyáșt) نر.م. ۱) لویوالی، غټوالی، ستروالی؛ ۲) لوی واله، لوینه.

**لویغ** (lwiğ) نر.م. لویش، لوشل، لوغ، رودل.

**لوی لاسی** (loylāsay) ص. نر.م. پراخ لاسی، اوږد لاسی، سخي، سخاوتمند.

**لویناب** (loynāb) ص. نر.م. د اماني دورې د نایب الحکومه انډول، نایب الحکومه.

**لوینه**[1] (lwína) ښځ.م. لومه، دام.

**لوینه**[2] (lóyana) ښځ.م. لویوالی، غټوالی.

**لویول** (loyawál) مص. مت. ۱) غټول، پېړول؛ ۲) اوږدول؛ ۳) لوړول؛ ٤) ارتول؛ ٥) زیاتول؛ ٦) عزت ورکول؛ ۷) پالل.

**لویه جرگه** (loyajargá) ښځ.م. افغاني دودیزه جرگه چې صلاحیت یې تر دولت و حکومت لوړ دی.

**لویه سلامي** (loyasalāmí) ښځ.م. په افغانستان کې په پاچا پورې تړلې بولۍ چې په ځواب کې به یې دلښکریانو له خوا داسې ناره جگېده «عمر دې دېر شه پاچا».

**لویه لار** (loyalār) ښځ.م. لویه لاره، پاچاهي لاره، شاهراه.

**لویه ولسوالي** (loyawulaswālí) ښځ.م. حکمراني، تر ولسوالۍ لوی اداري واحد.

**لویي** (loyí) ښځ.م. ۱) کبر، غرور؛ ۲) لوی واله؛ ۳) دوه تا شال، دوه لاشال؛ ۲) بزرگي، عظمت.

**لویېدل** (loyedál) مص. ل ۱) غټېدل؛ ۲) لوړېدل جگېدل؛ ۳) اوږدېدل؛ ٤) پېړېدل؛ ٥) زیاتېدل؛ ٦) پراخېدل؛ ۷) عزتمند کېدل.

**لویې لینډی** (loyelindáy) ښځ.م. لوی قوسونه، نیغې لینډۍ.

**لویي مار** (loyimār) ص. لاپو، دوزمار، باټو.

**له** (la) اد. ۱) نه، د؛ ۲) تونې (مکاني) سربل دی.

**له** (la) اد. لره، پاره، ته.

**لهار** (lahār) نر.م. لهر، څپه، موج.

**له بده مرغه** (labadamárğa) ق. له بدې برخې، له بده قسمته.

**له پامه لوېدلی** (lapāmalwedálay) نر.م. له نظره لوېدلی، فالتو، کرغېړن.

**له توغه وتل** (latuğawatál) نر.م. د یوه کار له توانه وتل، د یوه کار کړنې جوگه کېدل، د یوه کار توان درلودل.

**له دې امله** (ladeámála) ق. له دې سببه، ددې لپاره، له دې کبله، ددې په خاطر.

**له دې کبله** (ladekabála) وگ. له دې امله.

**لهب** (laháb) نر.م. ۱) تېږی کېدنه، تنده لگېدنه؛ ۲) د اور لمبه، شغله؛ ۳) گرد، دوره.

**لهجه** (lahjá) ښځ.م. د الفاظو آواز، تلفظ، د وینا طرز، د خبرو انداز.

**لهذا** (lıhāzā) اد. ۱) د علت توری دی؛ ۲) دې لپاره، ځکه، نو، پس، ترو.

**لهر** (láhar) نر.م. ۱) د اوبو څپه؛ ۲) شوق، ولوله؛ ۳) وهم؛ ٤) وجد؛ ٥) لېونتوب؛ ٦) دوره، د بیماری جوش؛ ۷) سوز، تاو؛ ۸) خواهش.

**لهړ** (lahāṛ) نر.م. گړنگ، د دوو غرونو ترمنځ ژوره کنده.

**لهړی** (lahāŕay) نر.م. برگه، داگه، لاړی، دستک.

له سره (lasára) ق. بالکل، قطعاً، بېخي نه.
له ښه مرغه (laṣamárğa) ق. له نېکه مـرغـه، له ښه قسمته، خوشبختانه.
له کومه (lakū́ma) ق. له کوم ځای څخه؛ له چا څخه.
له مخې (lamáxe) ق. پرته له استثنا ء، له یوه مخه، له یوه سره، ټول.
لهنګ (lhang) نر.م. الهنګ، زیات غم.
له نېکه مرغه (lanekamárğa) ق. له ښه مرغه، له ښه بخته، له ښه قسمته.
له واره (lawā́ra) ق. سمدلاسه، دفعتاً، پرته له ځنډ نه.
لهو (láhwa) نر.م. لوبه، بازي.
لهو و لعب (lahwalṣáb) نر.م. چټيات.
لهه (láha) ښځ.م. لبهه، لی، لای، نرمه ختـه.
لهېدل (lahedə́l) مـص. ل. زړه کـچـه کـېـدل، زړه چینجـېدل، زړه بدېدل.
لئیم (laaím) ص. نر.م. شوم، کنجوس، بخیل.
لی (lay) نر.م. ۱)وګ. لهه؛ ۲)لاندې کېناستنه.
لیا (lyā) اد. ۱)وګ. لا؛ ۲)ایله.
لیار (lyār) ښځ.م. وګ. لار.
لیارویني (lyārwínay) نـر.م. لاره وهـونکی، داکو، شوکمار.
لیاړجن (lyāṛján) ص. نر.م. وګ. لاړن.
لیاړه (lyā́ṛa) ښځ.م. وګ. لاړه.
لیاشه (lyāšá) ښځ.م. وګ. لشه.
لیاقت (lyāqát) نر.م. ۱)قابلیت، وړوالی، استعداد ۲)جوهر، ښه والی؛ ۳)پوهه، دانایي.
لیب (leb) نر.م. اړ، حصار، بند، ایسار.
لیپخور (lipxór) نر.م. پښېمان، نادم.
لیپړی (lipṛáy) نر.م. ۱)خوړین پړین، اوبړنه ختـه؛ ۲)ص.نر.م. شوله پوله، کمزوری سړی.

لیت (lit) نر.م. ۱)لېتکی، بېړۍ، شونتی، دړوکی؛ ۲)ص. نر.م. سولول شوی، ښویېدونکی.
لیتاړه (litā́ṛa) ښځ.م. وګ. ریتاړه.
لیت پیت (lítpít) نـر.م. ۱)رنګول شوی، ککړ، لړلی، الوده؛ ۲)بالکل سولول شوی.
لیتړی (litṛáy) نر.م. تیت شوی، خور شوی.
لیتکی (lítkay) نر.م. وګ. لیت۱.
لېټ (leṭ) نر.م. وګ. لوېټ.
لېټر (leṭár) نر.م. کړوبی، ختمېل، ختوبی، لېټی.
لېټر (léṭar) نر.م. د مایعاتو د اندازه کولو مق...
لېټوګرافي (layṭogrāfī́) ښځ.م. د طباعت هغه طریقه چې د کاڼي او اوسپنې د پلېټ په ذریعه چاپ شي، سنګي چاپ.
لېټی (leṭáy) ښځ.م. اتوب، کاچی، د اوړو شیره.
لیث (lays) نر.م. زمری، مزری.
لېچ (leč) نر.م. مټ، بازو، لېڅ، د لاس هډوکی.
لیچ (lič) نر.م. ۱)لیخ، د سترګـو یـوه ناروغي ده؛ ۲)هغه اوبه چې د ماشوم له خولې څاځي.
لیچار (ličā́r) نر.م. فضولې او بې ګټې خبرې.
لیچن (ličán) ص. نر.م. د لیچ په ناروغۍ اخته.
لېچه (léča) ښځ.م. وګ. لیچ.
لېچی (léčay) نر.م. کنداغ، یو ډول مېوه چې اغزن پوستکی او خوږ خوند لري.
لېچی (léčay) نر.م. د دروازې بازو، درشل.
لېچې بېچې (léčebéče) ص. ۱)امبړ چمبړ، نښتي، په یو بل کې ورننـوتي؛ ۲)په جګړه لاندې وتی؛ ۳)انې بانې.
لېڅ (lec) نر.م. وګ. لېچ.
لېڅی (lecáy) ښځ.م.ج. دوړی خوره وره ګونجې.
لېڅي (lecí) نر.ج. ۱)متې، مروندونه؛ ۲)څنګلې، د دروازې بازوان.

**لید** (lid) نر.م. کتل، د لیدلو حس، د باصرې حس.
**لید توګه** (lidtóga) ق. لیددود، طرز دید.
**لیدګوټ** (lidgwáṭ) نر.م. لید لوری، لیدزاویه.
**لیدل** (lidál) مص.ل ۱) ملاحظه کول، کتل، کسل؛ ۲) ملاقات کول؛ ۳) غور کول؛ ٤) زغمل.
**لیدل کتل** (lidálkatál) مص. ل. کتل، لیدل؛ ۲) ملاقات کول؛ ۳) آشنايي کول.
**لیدمېچ** (lídmeč) نر.م. د لید (نظر) د مېچ آله، بینايي سنج.
**لیدنه کتنه** (lidánakatána) ښځ.م. ملاقات، لیدهٔ کاتهٔ.
**لیدونی** (lidúnay) ص. نر.م. هغه چې د لیدلو وړ وي، هغه شی چې په سترګو ولیدل شي.
**لیدهٔ** (lidá) ښځ.م. کاتهٔ.
**لیدهٔ کاتهٔ** (lidákatá) لیدنه، کتنه، لیدل کتل.
**لیدهٔ پیدهٔ** (lidápidá) ص. دیده و دانسته.
**لیډر** (lidár) ص. نر.م. مشر، قاید، لاربنود.
**لیډرشپ** (lidaršíp) نر.م. مشري، قیادت.
**لېر** (ler) نر.م. ۱) د کږېږدۍ منحني شکله ډاګه؛ ۲) د سیند د غاړې کنده؛ ۳) لیار، لاره.
**لېرانګه** (lerắnga) ښځ.م. لیره، رته، چېرړه، چېړانګه، ریبنه، ریبنانګه.
**لېربون** (lerbūn) ص. نر.م. (ج. لېربانهٔ) لېربه، د وریو او ورغومو شړوونکی.
**لېربه** (lerbá) ص. نر.م (ج. لېربانه) و.ګ. لېربون.
**لېرګی** (lergáy) ښځ.م.ج. د غوړ پسته برخه.
**لېرلید** (lerlíd) نر.م. د لېرې لیدو آله، دوربین.
**لېرنه** (lerána) ښځ.م. هغه نری لښتی چې د خیمې شاوخوا د باران د وتلو لپاره جوړه شوی وي.
**لېروغه** (lerwắga) ښځ.م. هغه وری چې شپانه ته په مزدورۍ کې ور کول کېږي.

**لېړونی** (lerúnay) نر.م. بې موره وری.
**لېړوونی** (lerawūnay) نر.م. هغه خس و خاشاک او خځلې چې سېل له ځان سره راوړې وي.
**لېړه** (lerá) ښځ.م. ۱) هغه خوړ چې په غره کې د دوو غونډو تر منځ واقع وي؛ ۲) و.ګ. لېرانګه.
**لیړی** (líray) نر.م. وری، مرغومی، ورغومی.
**لېړۍ** (leráy) ښځ.م. نرۍ لاره.
**لېړې** (leré) ص. لرې، جلا، په ډېره فاصله.
**لېړي** (léri) نر.ج. د وریو او ورغومو رمه.
**لېړې والی** (lerewālay) نر.م. سره لېړې.
**لېړ** (leṛ) نر.م. لړ، سلسله، قطار، لین.
**لېړجن** (leṛján) ص. نر.م. لېړژن، لېړو، لاړن.
**لېړو** (leṛó) نر.م. بهنګړی، بنډی، یو ډول سابه دي.
**لېړه** (leṛá) ښځ.م. ۱) لاړه، لیاړه، د خولې اوبه؛ ۲) ربړه، د لړګیو ګاډی.
**لېزم** (lēzám) نر.م. سسته لینده، یو ډول لینده چې ډېره لچکداره وي.
**لېږد** (leẓd) نر.م. کوچ، رحلت، کډه، سفر.
**لېږدانځور** (leẓdanǰór) نر.م. فوتوکاپي، فوتوستیټ، د لیکنې انځور.
**لېږدپېر** (leẓdpér) نر.م. لېږندپېر، عبوري پېر، انتقالي دوره.
**لېږدچارې** (leẓdčắre) نر.م. ترانسپورتي یا لېږندويي چارې، حمل ونقل.
**لېږدل** (leẓdál) مص. ل. کډه کول، په سفر تلل، کوچ کول، روانېدل، لېږدېدل، لنېل.
**لېږدلیک** (leẓdlík) نر.م. نقل، کاپي.
**لېږدنه** (leẓdána) ښځ.م. نقل، روایت.
**لېږدوړ** (leẓdwáṛ) نر.م. د لېږدولو وړ، د کوچ وړ، د انتقال قابل.

**لېږدول** (leẓdawā́l) مص. مت. لېږل، استول؛ ۲) لېښول، کوچول، کډه کول.

**لېږدی** (leẓdáy) ص. نر. م. بار وړونکی حيوان.

**لېږدي** (leẓdí) د لېږد او هجرت اړوند، هجري.

**لېږدېدل** (leẓdedál) مص. ل. وګ. لېږدل.

**لېږدي کال** (leẓdikā́l) نر. م. دهجري کال.

**لېږدي کليز** (leẓdikalíz) نر. م. هجري کالنبود، هجري جنتري، هجري تقويم.

**لېږغندی** (leẓğanday) ص. نر. م. هغه سړی چې د کوچ کولو په کارونو کې مشر وي.

**لېږګی** (leẓgáy) نر. م. استر، پوټ، نری پوستکی، پټ.

**لېږل** (leẓál) مص. مت. استول، لېږدول، ورلېږل.

**ليږل** (liẓál) نر. م. ګومارل، بوختول، مقررول.

**لېږمی** (leẓmáy) ص. نر. م. چاپلوس، غوړه مال.

**لېږمي** (leẓmí) ښځ. م. هلې ځلې، منډې ترړې.

**لېږند** (leẓánd) نر. م. لېږدېدونکی، کوچېدونکی، متعدي (فعل)، ترانزيتي، ترانسپورتي.

**لېږندپېر** (leẓandpér) نر. م. لېږدپېر، لېږدېدونکې دوره، عبوري يا انتقالي دوره.

**لېږندچار** (leẓandčā́r) نر. م. کوزاتيف، هغه چې علت او فاعليت څرګندوي.

**لېږندچاراړخ** (leẓandčā́rāṛx) نر. م. د فعل کوزاتيف (صناعتي) وجه يا دود.

**لېږندچارتاړی** (leẓandčā́rtā́ṛay) نر. م. د کوزاتيف څرګندوونکی تاړی.

**لېږندچارکړ** (leẓandčā́rkaṛ) نر. م. کوزاتيف کړ، هغه فعل چې دوه فاعله او دوه مفعوله لري، لکه زمري پر رېدي ډوډۍ وخوروله يا وخوړله.

**لېږندکړ** (leẓandkáṛ) نر. م. متعدي کړ، متعدي فعل.

**لېږندوی** (leẓandóy) نر. م. لېږد، ترانسپورټ، ترانزيټ، حمل ونقل.

**لېږندويي** (leẓandoyí) ښځ. م. لېږدي، انتقالاتي، ترانسپورتي، ترانزيتي.

**لېږه** (leẓá) ښځ. م. ورلېږه.

**ليس** (lays) نر. م. مستقيم، سيده، مخامخ.

**لېسانس** (lesā́ns) نر. م. د پوهنتون د فارغېدو برې ليک يا تصديقپانه.

**لېسانسه** (lesā́nsá) ص. نر. ښځ. م. هغه څوک چې له پوهنتون څخه فارغ شوی وي.

**لېست** (lest) نر. م. لېسټ، نومليکه، فهرست.

**لېستکی** (lestaḳáy) نر. م. يو ډول نبات دی.

**لېسه** (lesá) ښځ. م. هغه ښوونځي چې تر ۱۲ ټولګي پورې وي.

**لېشبور** (lešbór) ص. نر. م. زوړ او شکېدلی کميس.

**لېشت** (lešt) نر. م. وګ. لوېشت.

**لېشکه** (lešáka) ښځ. م. وګ. لشکه.

**لېشکی** (lešakáy) ښځ. م. يو ډول واښه دي.

**لېشل** (lešál) نر. م. وګ. لوشل.

**لېشه** (lešá) ښځ. م. ۱) وګ. لشه؛ ۲) بې غاښونو ژامه، زامه.

**لېښ** (leṣ) نر. م. کوچ، تګ، سفر.

**لېښل** (leṣál) مص. مت. ۱) څټل، په ژبه يو شی پاکول او خوړل؛ ۲) کډه کول، په سفر تلل.

**ليښنه** (lisána) ښځ. م. هغه ژامه چې غاښ پکې نه وي، بې غاښو ژامه.

**لېښول** (leṣawā́l) مص. مت. لېږل، ورروانول.

**لېښوني** (leṣū́ni) نر. ج. کنګالي، د لوښو تر وينځلو وروسته پاتې شونې اوبه.

**لېښېدل** (leṣedál) مص. ل. کډه کول، روانېدل.

**ليغړی** (leğaray) ص. نر. م. خراب، پربد حالت.

**لېغونی** (legū́nay) نر.م. یو ډول غرنی بوټی دی.

**لیک** (lik) نر.م. ۱) خط، تحریر؛ ۲) مکتوب، خط، نامه؛ ۳) منظم قطار، لین.

**لیک اوزار** (likawzā́r) ق. کاغذ باب، لیک سامان آلات، قرطاسیه باب.

**لیکانی** (likā́nay) نر.م. لیکنی، قلم.

**لیکپوهه** (likpóha) ښځ.م. لیکپوهنه، خط پېژندنه، لیک پېژندنه.

**لیکتوري** (liktorí) نر.ج. لیکني توري، تحریري حروف، د لیکنې توري.

**لیکچه** (likčá) ښځ.م. خاته، ورځلیکچه، کتابچه، دایرې.

**لیکدود** (likdód) نر.م. د لیک انداز، رسم الخط.

**لیکل** (likál) مص.مت. کښل، ښکل، تحریر کول.

**لیکلار** (liklā́r) ښځ.م. د لیکنې ډول، سبک، لیکندود.

**لیکلاره** (liklā́ra) ښځ.م. و.گ. لیکلار.

**لیک لوست** (liklwást) نر.م ۱) لیکنه لوستنه؛ ۲) تعلیم، ښوونه او روزنه.

**لیکمن** (likmán) ص. نر.م. برخه لرونکی، حصه دار، برخه وال، ونډه لرونکی.

**لېکن** (lekán) اد. ۱) مگر، اما، ولې، خو؛ ۲) نر.م. لېکڼ، د گېډې درد.

**لیکنښه** (liknaṣa) ښځ.م. یوه لیکنښه لکه ( ، ؛ ... ).

**لیکنښې** (liknáṣe) ښځ.ج. لیک نخښې، د نقطه گزارۍ نښې.

**لیکنه** (likána) ښځ.م. لمېسنه، کښنه، مقاله، مضمون.

**لیکنی**(۱) (likanáy) نر.م. د لیک اړوند، لیکلی، لیکل شوی یا لیکل کېدونکی.

**لیکنی**(۲) (likánay) نر.م. و.گ. لیکانی.

**لیکڼ** (likáṇ) نر.م. و.گ. لېکن ۲.

**لیکوال** (likwā́l) نر.م. کاتب، لیکونکی، محرر، اهل قلم، د قلم څښتن.

**لیکوالي** (likwālí) ښځ.م. لیکنه، د لیک کار، کتابت.

**لیکوالي چارې** (likwāličā́re) ښځ.ج. لیکوالي کارونه، امور نویسنده گي.

**لیک و شمېر** (likušmér) نر.م. حساب و کتاب، کتابت او محاسبه.

**لیکونکی** (likū́nkay) ص. نر.م. لیکونی، لیک کوونکی، کاتب، محرر، لیکوال.

**لیکه** (líka) ښځ.م. ۱) قطار؛ ۲) سطر، کرښه؛ ۳) نښه؛ ٤) سړک، لاره؛ ٥) رسم و رواج؛ ٦) راز، مناجات؛ ۷) قولنج.

**لېکه** (léka) ښځ.م. ۱) برخه، ونډه، حصه؛ ۲) یو شان والی، موزونیت.

**لیکه لار** (likalā́r) ښځ.م. مستقیمه لاره.

**لیکی** (likáy) نر.م. کتاب.

**لیگه** (ligá) ښځ.م. د لیگه، ډاک ډبر، هغه پټی چې کښت په کې نه کېږي، لا مزروع.

**لیلام** (lilā́m) نر.م. نیلام، د بولۍ یا غږ په ذریعه یو شی خرڅونه.

**لیلامچي** (lilāmčí) ص. نر.م. لیلاموونکی، د غږ په واسطه یو شی خرڅوونکی.

**لیلامول** (lilāmawál) مص.مت ۱) نیلامول، په ارزانه بیه یو شی خرڅول؛ ۲) د غږ په واسطه یو شی خرڅول.

**لیلامي** (lilāmí) ښځ.م. ارزان بیه شی، استعمال شوی شی چې د خرڅولو لپاره عرضه شي.

**لیلامېدل** (lilāmedál) مص. ل. ۱) نیلامېدل، د غږ په واسطه یو شی خرڅېدل؛ ۲) په ارزانه بیه یو شی خرڅېدل.

**لېله** (lelá) ښځ.م. ۱)خوی، عادت، خصلت؛ ۲)الباره، روده، نول، سبک.

**لیلی** (lilay) نر.م. کمزوری خوار و ډنګر هلک.

**لیلېدل** (liledál) مص. ل. ۱)کمزوری، خوار او ډنګر کېدل؛ ۲)هلې ځلې کېدل او زهیرېدل.

**لی لېونی** (láylewanáy) نر.م. د کوچنیانو یو ډول لوبه چې پر غوزانو یې کوي.

**لیلیه** (laylyá) ښځ.م. د زده کوونکو او محصلانو د شپې د اوسېدو ځای.

**لیمڅی** (limcay) ښځ.م. نیمڅی، کراسته، لمڅی.

**لیمو** (limū) نر.م. لیمن، یو ډول ترېوه مېوه ده.

**لیموناید** (limūnáyd) نر.م. دلیمو ګاز لرونکی شربت.

**لېمه** (lemá) نر.م.ج. سترګې.

**لیمی** (limáy) ښځ.م. ۱)المده، نمجنه؛ ۲) لوند.

**لین** (layn) نر.م. لیڼ، لړی، لیکه، قطار، کرښه.

**لینده** (lindá) ښځ.م. ۱) کمان، د پخوانی زمانې یوه جنګي وسله؛ ۲)غولکه.

**لینده کی** (lindakáy) ښځ.م. ۱) د توپک ماشه؛ ۲) د کوچنیانو د بالښت کمان؛ ۳)د سارنګ کمان؛ ٤)وړوکې لینده.

**لینده مار** (lindamār) ص. نر.م. دلیندې ویشتلو ماهر، د لیندې چلولو استاذ.

**لینده يي** (lindayí) ښځ.م. لینده ییز، کماني، قوسي.

**لیندۍ** (linday) ښځ.م ۱)لیندکی، دماشومانو کمان؛ ۲)دتوپک کمانی؛ ۳)دپنبو یالاسونو دکونډۍ لاندې رګونه؛ ٤)د اوبو فواره؛ ٥)کنده ځمکه؛ ٦) د هجري کال نهمه میاشت، قوس.

**لیندی** (linday) نر.م. ۱)بډه ګال، د لوخې ګل؛ ۲)رسا ویشتونکی، د لیندې ویشتلو ماهر، سیندک.

**لیندۍوال** (lindaywāl) ص. نر.م. لیندۍ لرونکی توپک، چاکو او... ، کمانی دار.

**لېنډا** (lendā) ص.نر.م. ګنجی، پک.

**لینګ** (ling) نر.م. یو ډول تریخ نبات دی.

**لینګاړی** (lingāṛay) نر.م. ګډین، پیتازی، د زنګنو پر توګ.

**لینګته** (lingáta) ښځ.م. لینګتی، غېږې نیسولو کې د پښو اچولو یو چل دی.

**لینګور** (lingawár) ص. نر.م. غټ غټ لینګې لرونکی سړی، لوېې لوېې پنډۍ لرونکی سړی.

**لینګی** (lingáy) نر.م. دورانه له ښخ نه تر بېډېو یا ښنګرو پورې د پښې برخه، تقریباً توله پښه.

**لینوټایپ** (laynoṭāyp) نر.م. د ټایپ یو ډول ماشین دی.

**لیڼ** (layṇ) نر.م. و.ګ. لین.

**لیڼ دیڼ** (láyṇdáyṇ) نر.م. لین دین، راکړه ورکړه.

**لیڼ سوټیڼ** (láṇsotáyṇ) نر.م. لاندې بساندې، ښکته والی، پورته والی.

**لېو** (lew) نر.م. ۱) نښتي، چمبر، ۲)ډېر نری او ښایسته اخېړ؛ ۳)سیم ګل.

**لېوال** (lewāl) نر.م. ۱) ارزومند؛ ۲)مین.

**لېوالتوب** (lewāltób) نر.م. ۱) لېوالتیا، ارزومندي، اشتیاق، غوښتنه؛ ۲) مینتوب.

**لېوالول** (lewālawál) مص. مت. آرزومند جوړول.

**لېوالېدل** (lewāledál) مص. ل. ۱)آرزومند کېدل، مشتاق کېدل؛ ۲)مینېدل.

**لېوډېو** (léwdéw) نر.م. ګوزاره، ساعت تېري.

**لېور** (lewár) نر.م. د خاوند ورور، د مېړه ورور.

**لېورزی** (lewarzáy) نر.م. د لېوره زوی، لېورځی.

**لېورزۍ** (lewarzáy) ښځ.م.ج. لېورځی، د لېورۀ لور.

**لېوړی** (lewṛáy) ښځ.م.ج ۱) رېوړې، يو ډول خوږه چې د کنځلو دانې په کې ګډې وي؛ ۲) ښېښکۍ.

**لېوکټی** (lewkaṭáy) نر.م. د لېوهٔ بچی، د شرمښ بچی، وړوکی لېوه.

**ليول** (liyawál) مص.مت. ۱) عادتول، روږدي کول؛ ۲) هڅول، تشويقول، ترغيبول.

**لېول** (lewál) نر.م. ۱) هواری؛ ۲) د هواری معلومولو آله.

**لېون باګی** (léwanbāgay) ص.نر.م. لېون ساری، لېون بغری، لېونتاړی، لېونی، ميذوب.

**لېونتوب** (lewantób) نر.م. لېونتيا، د لېوني کېدو حالت، لېونی کېدنه، دېوانګي.

**لېونتون** (lewantū́n) نر.م. د لېونيانو ځای، دارالمجانين، پاګل خونه.

**لېونسدی** (lewansáday) نر.م. سودايي، بې سره، وسوسي.

**لېون سری** (lewansáray) نر.م. وګ. لېون باګی.

**لېون شک** (lewanšák) ص.نر.م. نيم لېونی، هغه څوک چې د لېوني شک پرې کېږي.

**ليونغرتی** (lewanğrtáy) ص.نر.م. ياوه ګوی، چټيات ويونکی، لېون باګی.

**لېونغری** (lewanğáray) ص.نر.م. وګ. لېون باګی.

**لېونی** (lewanáy) ص.نر.م. په ښه او بد نه پوهېدونکی، مجنون، دېوانه.

**لېونۍ** (lewanáy) ښځ.م.ج. ۱) يو ډول تريخ نبات دی؛ ۲) د (لېونی) ښځينه بڼه، مجنونه.

**لېونۍ پسۍ** (lewanáypaṣáy) ښځ.م.ج. يو ډول بوټی دی.

**لېونی سپېلنی** (lewanáyspelanáy) نر.م. ۱) بالکل لېونی؛ ۲) سخت عاشق، وريت پريت، ډېر زيات لېوال.

**لېونۍ شپېشتي** (lewanáyšpéšte) ښځ.م.ج. لېونۍ شپترې، لېونۍ شپېشتکه، د رشقې په څېر يو ډول تريخ خونده نبات دی.

**لېونۍ شوتله** (lewanáyšawtála) ښځ.م. د شوتلې په څېر يو ډول نبات دی؛ وګ. لېونۍ شپېشتي.

**لېوول** (lewawál) مص.مت. ۱) اخېړول، نری کاګل ورکول؛ ۲) نبښلول، ورپورې لګول؛ ۳) سيم ګلول.

**لېوهٔ** (lewá) نر.م. ۱) شرمښ، يو ځيرونکی ځنګلي ځناور دی؛ ۲) مج.ص. خطرناک سړی، ظالم سړی.

**لېوهٔ خويه** (lewaxóya) ص.نب. لېوه لوښی، لېوه صفته، ګرګ صفته.

**لېېدل** (lewedál) مص.ل. ۱) اخېړېدل، په يو شي باندې دلېتی غوندې ځيږمښل؛ ۲) نښتل، ورپورې کلک لګېدل؛ ۳) سيم ګل کېدل.

**ليه** (layá) ښځ.م. ۱) جګړه؛ ۲) ص.ښځ.م. وزګار، فارغ؛ ۲) بېکاره، فضول.

**ليې** (laye) ص.ښځ.م. وزګارې، بېکارې، فضولې.

**ليېدل** (layedál) مص.ل. ۱) عادتېدل، بلدېدل، روږدي کېدل؛ ۲) ترغيب موندل، راالوړېدل.

**لېيل** (leyál) مص.مت. ګواهي ورکول، شاهدي ادا کول.

**لېينه** (leyána) ښځ.م. شاهدي، ګواهي.

# م

م[1] (mim) د پښتو ژبې شپږدېرشم توری دی، ابجدي ارزښت يې (۴۰) دی.

م[2] (mim) د ميلادي کال لنډون نښه ده.

**ما** (mā) ښځ.م. ۱) پلو، پېڅول، د کېږدۍ پرده؛ ۲) مفرد متکلم ضمير (ج. موږ).

**مآب** (maāb) نر.م. ۱) د عزت او درناوي لاحقه ده؛ ۲) د آرام او سکون ځای؛ ۳) دانګازې ځای.

**مات** (māt) ص. نر.م. ج. ۱) نيم چاودی، توکړې، مات شوی؛ ۲) شکست، تښتېدلی.

**ماتحت** (mātáht) ص. نر.م. ترلاس لاندې، د حکم تابع، اېل.

**ماتر** (mātár) نر.م. له ژرندې راپرېوتي اوړه.

**مات رامات** (mātrāmā́t) ص. نر.م. مات مات، کوږ ووږ.

**مات ګوډ** (mātgwáḍ) ص. نر.م. توټې توټې.

**ماتل** (mātál) ص. نر.م. ځنډ، ټال، معطل.

**ماتم** (mātám) نر.م. مصيبت، غم، وير؛ واوېلا.

**ماتمی** (mātamáy) ص.نر.م ۱) غم لړلی، وير لړلی؛ ۲) تاوان، د وررسېدلي تاوان تلافي.

**ماتنی** (mātanáy) نر.م. تاوان، جرمانه، جريمه، غرامت.

**ماتو** (mātū́) ښځ.م. د کور مالکه، بي بي.

**ماتوالی** (mātwā́lay) نر.م ۱) غريبي، بې وسي؛ ۲) د ماتېدو حالت؛ ۳) نرمښت، منښته، منل.

**ماتوره** (mātorá) ښځ.م. شاړه ځمکه.

**ماتوړ** (mātóṛ) نر.م. غټ ځتک، پلک.

**ماتول** (mātawә́l) مص. مت. ۱) نيمول، توکړې کول؛ ۲) خوړل؛ ۳) مغلوبول، ماتې ورکول.

**ماتومی** (mātomáy) نر.م. کمېشن، کارباړه، کار مزد.

**ماتوينی** (mātoyánay) ص. نر.م. ملاماتی، د ماتولو قابل، هغه تومانچه چې راماتېږي.

**ماته** (mā́ta) ښځ.م. ۱) قات شوی، دوه شوې، جلا شوې، تو‌تې تو‌تې، ماتوالی؛ ۲) یستنه، ماتې؛ ۳) ص. کنده کړی، مات کړی.

**ماته خوا** (mātaxwā́) ښځ.م. خواشیني، بېزاري، خپګان، مات زړه.

**ماته ګوډه** (mātagoḍá) ښځ.م. نیمګړ تیاوې، سودسو، تک تو‌ک کار، آخوا دېخوا کار.

**ماته لیکه** (mātalíka) ښځ.م. منکسر خط.

**ماتې** (mā́té) ښځ.ج. ۱) مخه کونه؛ ۲) مغلوبیت، ناکامي، شکست، تېښته.

**ماتی** (mātáy) نر.م. اروا ورکی، جګنو.

**ماتېدل** (mātedә́l) مت. ل. ۱) نیمېدل، تو‌کېږي کېدل؛ ۲) خوړل کېدل ۳) مغلوبېدل.

**ماټس** (māṭás) نر.م. ۱) هغه سوی چې د زخم له امله پیدا کېږي؛ ۲) هغه پړسوب چې د وهلو له امله ور پیدا شوی وي.

**ماټکی** (māṭkáy) نر.م. باهو، بازوبند.

**ماټور** (māṭawә́r) ص. نر.م. چاچې زنه خربیلی او نورې خواوې پرېښې وي.

**ماټوره** (māṭorá) ښځ.م. بدهضمي، د ډېر خوراک له امله اشتها خرابېدنه.

**ماټوره** (māṭóra) ښځ.م. پاره.

**ماټوس** (māṭū́s) نر.م. ۱) رسولی؛ ۲) غټه دانه؛ ۳) پوپکه.

**ماټوی** (māṭwáy) نر.ښځ.م. ۱) ټیک، د سرو زرو پسول چې په تندي باندې ځوړندېږي؛ ۲) ځنې.

**ماټی** (māṭáy) نر.م. و.ګ. ماټور.

**ماټی** (māṭáy) ښځ.م.ج. ۱) متی، چاتی، مټ، زخم؛ ۲) چکله.

**ماټیکی** (māṭikáy) ښځ.م.ج. ښه ګرانه، په سختۍ سره.

**ماجب** (mā́jib) نر.م. ۱) تنخواه، اجرت، وظیفه؛ ۲) هغه رقم چې حکومت یې قبایلو ته ورکوي.

**ماجر** (mājár) نر.م. له هدیرې نه چاپېرتاوشوی دېوال.

**ماجرا** (majrā́) ښځ.م. (ج. ماجراوې) ماجری، کیسه، واقعه، پېښه.

**ماجو** (mājū́) نر.م. ماځو، مازو، یو ډول دارو دي چې د ځېرې ونې څخه لاس ته راځي.

**ماچانی** (māčā́ṇay) نر.م. ترنګوشه، مچوغنه، مچنوغزه، مشنوغزه.

**ماچلی** (māčaláy) ښځ.م. توقه، پوچکه، د کار توسو تشه قوله.

**ماچونګن** (māčū́ngan) نر.م. چرچرکه، چینچاره، د ملخ په څېر یوه حشره ده.

**ماچه** (mā́ča) ښځ.م. ۱) پله، پته؛ ۲) سودا، د یو شي په بدل کې سودا، مارچه.

**ماچې** (mā́če) ښځ.ج. میچې، له اومو اوړو جوړ نرې تارونه چې تروچېډو وروسته یې په یوه ځانګړي ډول پخوي، سیمیان.

**ماځو** (mājū́) نر.م. و.ګ. ماجو.

**ماځی** (mājáy) ښځ.م. یو زېړ رنګی بې پانو نبات دی چې پر نورو نباتاتو تاوېږي.

**ماڅی** (mācáy) ښځ.ج. ۱) یو ډول بوټی چې د ببرو په ځانګو کې کېږي؛ ۲) د ببرو یوه ناروغي ده.

**ماحصل** (māhasíl) نر.م. حاصل، حاصلات، نتیجه، پایله.

**ماحول** (māháwl) نر.م. چاپېر، ګېرچاپېر، چاپېریال، شاوخوا علاقه، سیمه، محیط.

**مأخذ** (māxáz) نر.م. بنیاد، منبع.

**ماخوذ** (māxū́z) نر.م ۱) اخذ کړی شوی، اخیستل شوی؛ ۲) ګیر، نیول شوی.

**ماخوذېدل** (māxūzedә́l) مص. ل. ۱) گڼېدل، نیول کېدل، الزام لګېدل؛ ۲) غاړه بندېدل.

**ماخورۍ** (māxūrә́y) ښځ.م.ج. مارخورۍ، چمچکۍ، کربوړی، یو ډول خزنده.ده.

**ماخۍ** (māxә́y) ښځ.م.ج. ۱) یو سارانی بوټی دی؛ ۲) څوز، جټ ګون، یو ډول ازغی.

**مادنګۍ** (mādangә́y) نر.م.ج. ۱) سست، بېکاره، لټ؛ ۲) ابجرا، هیجرا.

**ماده** (mādá) نر.م. هغه شی چې په حواسو لمس او حس کېږي؛ ۲) ښځ.م. د قانون یا آئین عددونه

**مادي** (mādí) ص. ۱) اصلي، ذاتي، قدرتي؛ ۲) په مادې پورې تړلی یا اړوند.

**ماديات** (mādyā́t) نر.ج. مادي شیان، مخلوقات.

**مادیت** (mādyát) نر.م. ۱) ماده کېدل؛ ۲) د ماده کېدو حالت؛ ۳) کفري نظریه.

**مادینه** (mādiná) ښځ.م. و گ. ماندینه.

**ماډل** (māḍál) نر.م. موډل، نمونه، نقشه، قالب.

**ماذنه** (māzána) ښځ.م. مناره، موناره، څلی.

**ماذون** (māzū́n) ص. نر.م. خلیفه، اجازه ورکړی شوی، اجازت ورکړی شوی.

**مار** (mār) نر.م. ۱) منګور، منګری؛ ۲) ختې مار.

**مارا** (mārā́) نر.م ۱) ښکار؛ ۲) د ماله راکړه لنډون.

**مارافسون** (mārafsū́n) نر.م. د کوډو مار.

**مارباغ** (mārbā́ğ) نر.م. یو غره نی بوټی دی.

**ماربچړی** (mārbačŕay) نر.م. د ماربچی.

**ماربچوړی** (mārbačū́ṛay) نر.م. ۱) د ماربچی؛ ۲) خوږې مینچې یا مانچې.

**مارپېچ** (mārpéč) نر.م. ۱) تاوراتاو، کوږ وږ؛ ۲) د جنډې د سر څونډی؛ ۳) جنډه.

**مارپېچه** (mārpečá) ښځ.م. ۱) تاوراتاو؛ ۲) یو ډول ګنډل.

**مارجړی** (mārjaṛә́y) ښځ.م.ج. ۱) تریاق، مارېهره؛ ۲) د یو زهرجن بوټي نوم دی.

**مارچوب** (mārčū́b) نر.م. یو لرګی چې د مار په شکل وي، خلک یې د لکړې یا امسا په ډول کاروي.

**مارچونډۍ** (mārčū́nḍә́y) نر.م. د ګل رېږېدلې پاڼه.

**مارچه** (mārčá) ښځ.م. د جنس په بدل کې د جنس سودا.

**مارچیچلی** (mārčičә́lay) ص.نر.م. هغه څوک چې مار چیچلی وي.

**مارڅوه** (mārcūwá) ښځ.م. یو بوټی دی.

**مارجونګړ** (mārjūngáṛ) نر.م. مارته ورته حشره ده، مارجونګړه.

**مارخور** (mārxór) نر.م. ۱) غرڅه؛ ۲) غرڅنۍ وزه؛ ۳) د هوسۍ یو ډول؛ ٤) مارچیچلی؛ ۵) مارخوړونکی.

**مارخورکه** (mārxoráka) ښځ.م. یو ډول مرغۍ ده چې ماران خوري.

**مارخورۍ** (mārxorә́y) ښځ.م.ج. مارخورۍ، چمچکۍ، څمڅکۍ.

**ماردندان** (mārdandā́n) نر.م. جودر، یو ډول نبات دی چې په غنمو کې شین کېږي.

**ماردنګۍ** (mārdangә́y) ښځ.م. ۱) شمعه داني، شمعدان، هغه تخته چې ډېوه پرې ایښودل کېږي؛ ۲) لالټېن.

**مارډوله** (mārḍawlá) ص.نب. د مار غوندې، مار وزمه.

**مارش** (mārš) نر.م. د خلکو ګډ لاریون.

**مارشال** (māršā́l) نر.م. سرلښکر؛ له ستر جنرال نه لوړه عسکري رتبه.

**مارشالا** (māršālā́) ښځ.م. پوځي حکومت او قانون.

**مارغان** (mārğā́n) نر.ج. مرغان، د مارغه جمع.

**مارغتی** (mārğatáy) نر.م. گوجی، گوجه، اسمان گرینگن، لعاب لرونکی چینجی، اسمان ښار.
**مارغه** (mārğá) نر.م. الوتونکی.
**مارغیت** (mārğít) نر.م. دوکه، فریب، مکر.
**مارغیتل** (mārğitál) ص. دوکه باز، چلباز.
**مارفیا** (mārfyá) ښځ.م. د افیونو ست.
**مارک** (mārk) نر.م. ۱) نښه، علامه؛ ۲) المبر؛ ۳) د سرو او سپینو زرو پیمانه. ۴) دجرمنۍ دپیسو واحد.
**مارکب** (mārkáb) نر.م. مارماهي.
**مارکر** (mārkár) نر.م. ۱) نښه لګوونکی؛ ۲) د لوبو منتظم؛ ۳) یو ډول قلم دی.
**مارکونډی** (mārkonḍáy) ښځ. نب.ج. یو بوټی چې پلی یې اغزن وي، مال کونډی.
**مارکه** (mārká) ښځ.م. ۱) نښانه، نښه، علامه؛ ۲) د شیعه ګانو امام باړه یا تکیه خانه.
**مارکېټ** (mārkéṭ) نر.م. بازار، منډيي.
**مارګرنډی** (mārgaranḍáy) ښځ.م. د ماشومانو د یوې لوبې نوم.
**مارګه** (mārgá) نر.م. تمځری، دراجه، یو مرغه دی.
**مارګیر** (mārgír) نر.م. هغه څوک چې ماران نیسي. پاړو، پاړوګر.
**مارل** (māral) مص. مت. مقررول، په کار لګول، مېرل، ګومارل، ټاکل.
**مارمری** (mārmaráy) ښځ.م. یو ډول ډبره ده.
**مارمار** (mārmār) نب. مارو مارو.
**مارماری** (mārmāráy) مارمهره، مار موره، په جنګ اچونه، جنګ ته اماده کونه.
**مارمچی** (mārmčáy) ښځ.م. هغه مچی چې لښه یې نه وي، ماکو، ټاکر.
**مارمولی** (mārmoláy) نر.م. ارامولی، د کوچنیانو یوه ناروغي ده.

**مارمهره** (mārmohrá) ښځ.م. ۱) هغه مهره چې د مار په سر کې وي او د مار د زهرو اغېز ختموي؛ ۲) تریاق.
**مارنګی** (mārangáy) ص. د مار په څېر.
**مارو** (māró) ص. سوبمن، ماتې ورکوونکی، فاتح، وهونکی.
**ماره** (māra) ښځ.م. غنیمت، لوټ، ښکار.
**ماره داړه** (māradāṛá) ښځ.م. شوکه ډاکه، لوټمار، لوټنه، وهنه.
**ماری** (māráy) نر.م. ګرندی اوبښ.
**ماریا** (māryā́) تېر. ووژله، ووهله، وواژه، وواهه.
**مارې داړې** (māredā́ṛe) ښځ.ج. د مارا داړه جمع.
**مارسوه** (mārswá) ښځ.م. شاتره.
**ماړه** (māṛá) ص.ج. د موړ جمع، د موړ مغیره حالت، دولتمند.
**ماړې هاړې** (māṛehāṛe) د افسوس کلیمه، های های، وای وای.
**مړوب** (maṛūb) نر.م. سېراب، موړ.
**مازغه** (māzğá) نب. ماغزه، مغز.
**مازو** (māzū́) نر.م. د یوې دوا نوم، ماجو.
**مازیګر** (māzigár) نر.م. د ماسپښین او ماښام تر منځ وخت، عصر.
**مازیګرنی** (māzigaranáy) ښځ.م.ج. عصریه.
**ماژ** (māž) نر.م. ګډ، پسه، د ګډ یو ډول.
**ماس** (mās) ص. مراوی، پړسېدلی.
**ماسپښین** (māspaṣín) نر.م. د غرمې او مازدیګر ترمنځ وخت.
**ماسته** (māstá) نر.ج. په پخې شیدې چې تومنه ور واچول شي، مستې ترې جوړېږي.
**ماسټر** (māsṭár) نر.م. تر لسانس وروسته برې لیک درلودونکی، له (۱۸) فارغ، استاد.

**ماسخوتن** (másxotán) نر.م. د ماښام او شپې ترمنځ وخت.

**ماسکه** (máská) ښځ.م. هغه قوت چې خوراک د هضم لپاره په معده کې ایساروي.

**ماسوا** (mā́sewā́) ص. ماسوی، پر دې سربېره، له دې نه پرته، له دې نه علاوه.

**ماسه** (mā́sá) ښځ.م. د تولې دوولسمه برخه، د اتو رتو وزن.

**ماسي** (mā́si) ښځ.م. ترور، د مور خور.

**ماسۍ** (mā́sáy) ښځ.ج. څرمني جرابې.

**ماشت** (mā́št) نر.م. ګډا، ډانس، ناچ، نڅا.

**ماشرنګ** (mā́šráng) نر.م. د یوه ګل نوم دی.

**ماشکي** (mā́ški) نر.م ۱) هغه څوک چې په مشک کې په مزدورۍ اوبه راوړي، سقاو؛ ۲) ماشي.

**ماشو** (mā́šū́) ښځ.م. ترور، تروړۍ، ماسي، خاله.

**ماشوخېل** (mā́šūxél) ج. د ترور اولاد، د ترور له خوا خپلوان؛ د مومند و یوه پښه ده.

**ماشوړه** (mā́šūṛá) ښځ.م. ۱) د تار غوټه، د تار کلاوه؛ ۲) نه سمېدونکی، پېچلې مسئله.

**ماشوم** (mā́šū́m) نر.م. وړوکی، ورکوټی، کوچنی.

**ماشومتوب** (mā́šūmtób) ص. نر.م. وړوکوالی، ماشومتیا، ماشوموالی، کوچنیوالی.

**ماشه** (mā́šá) ښځ.م ۱) د اتو رتو وزن؛ ۲) د ټوپک د ډز کولو آله؛ ۳) د زخم پوټکی یا پرچوخی.

**ماشی** (mā́šay) نر.م. ۱) غوماشی، غوماشه، یو ډول یې د ملاریا خورونکی دی، میاسی؛ ۲) ښځ.م. د ټوپک لندی.

**ماشینخونه** (māšinxūná) ښځ.م. ورکشاپ، د ماشینونو د جوړولو او ترمیمولو ځای.

**ماشین ساز** (māšinsā́z) نر.م. ماشین جوړوونکی، ماشینکار.

**ماشینکار** (māšinkā́r) نر.م. ماشین چلوونکی، ماشینچي.

**ماشین ګڼ** (māšingə́ṇ) نر.م. هغه وسله چې په یو وار ټولې ګولۍ ولي، اتوماټ ټوپک.

**ماشیني** (māšiní) ص.نب. پر ماشین اړوند، د ماشین اړوند، پر ماشین جوړ شوی.

**ماښام** (māṣā́m) نر.م. د مازدیګر او ماسختن تر منځ وخت.

**ماښام ستر ګه** (māṣāmstárga) ښځ.م. د ماښام ستوری.

**ماښامنۍ** (māṣāmanə́y) ښځ.م.ج. ماښامنۍ ډوډۍ، ماښامنۍ مېلمستیا.

**ماښامی** (māṣāmáy) نر.م. ۱) د ماښام څکلکی، ماښام ته منسوب؛ ۲) د جمعې په شپه د جومات ملا امام ته خیرات ورکول.

**ماضي** (māzí) تېره زمانه، تېر وخت.

**ماطل** (mātál) ص. نر.م. هغه څوک چې د پور په ورکولو کې انې بانې کوي.

**ماغ** (māǧ) نر.م. ۱) د هیلۍ د جنس یوه مرغۍ؛ ۲) د زردشتي مذهب روحاني پیر.

**ماغزه** (māǧzə́) نر.ج. ۱) مازغه، مغز، دماغ، د سر ماتخرځې؛ ۲) زړی.

**ماغزه څټ** (māǧzacə́t) ص. نر.م. هغه سړی چې فضول خبرې کوي، کړتو، دماغ څټ.

**ماغو** (māǧū́) نر.م. لاس پیله، دستکش، لاس ماغو.

**ماغوت** (māǧū́t) نر.م ۱) زېړ رنګه فیرني؛ ۲) یو ډول رخت (ماهوت).

**مافوق** (māfáwq) ص. اعلی، اوچت، لوړ.

**مافي الضمیر** (māfizamír) نر.م. هغه څه چې د چا په زړه کې وي، د زړه خبره، نیت، رأی.

**مافیها** (māfihā́) نر.م. چې څه په دې دنیا کې وي.

**ماقبل** (māqábal) ق. چې څه وړاندې وي.
**ماقوت** (māqū́t) ښځ.م. ماغوت، یو ډول رخت دی.
**ماکو** (mākū́) نر.م. ۱) د جولاګانو یوه آله؛ ۲) یوه وړه بېړۍ؛ ۳) دسرو مچیو یو ډول؛ ٤) څوښتی
**ماکول** (mākól) ښځ.م. هغه شی چې خوړل کېږي.
**ماکولات** (mākolā́t) ښځ.ج. د خوړلو شیان.
**ماګۍ** (māgáy) ښځ.نب. په دسترخوان پورې نښتي اوړه، د اوړو پېړې، زغالې.
**مال** (mā́l) نر.م. ۱) دولت، پیسې تکې؛ ۲) غواوې، مېښې، څاروي؛ ۳) لوی سړک چې دواړو غاړو ته یې ونې وي؛ ٤) ص. رورډی؛ ۵) هغه ښځینه څاروی چې تېره شوې وي؛ ٦) نر.م. هغه ځای چې اواز پکې انعکاس کوي؛ ۲) انجام، پای.
**مال اسباب** (mālasbā́b) نر.ج. د کور قیمتي سامان، تمامي دولت، ټول دولت، نغد دولت.
**مالاق** (mālā́q) ص.م. برجق، ډک.
**مالاقه** (mālāqá) ښځ.م. ډکه، لب ریزه، برجقه.
**مالامال** (mālāmā́l) ص. ډک، تر مورګو ډک، پرمورګو اوښتی، په مال او دولت ښه پوره.
**مالت** (malát) نر.م. محله، چم ګاونډ، کور-کوڅه.
**مالټا** (mālṭā́) ښځ.م. مالته، یوه رس لرونکې خوږه مېوه چې د نارنج له کورنۍ څخه ده.
**مالچر** (mālčár) نر.م. ورشو، څرځای.
**مالځر** (mālcáṛ) نر.م. د مال د څرولو ځای، ورشو، څرځای.
**مال حال** (mālhā́l) نر.م. مال و اسباب.
**مال خولیا** (mālxolyā́) ښځ.م. د دماغ خلل، لېونتوب.
**مالدار** (māldā́r) ص. نر.م. ۱) دولتمند، د مال خاوند، شتمن؛ ۲) د څارویو مالک.
**مال دولت** (māldawlat) نر.م. پنګه، شته.

**مالره** (mālara) ق. ماله، مالپاره، زما لپاره.
**مالش** (mālíš) نر.م. مښل.
**مالک** (mālaká) ستا څه دي، پر تا څه دي، څه در شوي.
**مالکانه** (mālikāná) ص. ۱) د مالک په ډول؛ ۲) د ځمکوالۍ حق.
**مالکنډۍ** (mālkanḍáy) ښځ.م.ج.و.ګ. مارکونډۍ.
**مال کول** (mālkawā́l) مص. مت. دحیوان جنسي غوښتنه، دغوا، وزې او مېږې جنسي غوښتنه.
**مالکین** (mā́lkin) نر.م. یو ډول ځېږ رخت دی.
**مالګبه** (mālgabá) نر.م. د مالګې کاروبار کوونکی.
**مالګړوبی** (mālgrū́bay) نر.م. مالګړوبی، د مالګې لوښی، هغه لوښی چې مالګوبی پکې جوړوي.
**مالګتوب** (mālgtúb) نر.م. مالګین والی.
**مالګنۍ** (mālganáy) نر.م. نمکدان.
**مال ګوانۍ** (mālgwāṇáy) نر.م. ۱) غوبه، پاده وان، ګوجر؛ ۲) شپونکی، ګډبه.
**مالګوبی** (mālgūbay) نر.م. د مالګې اوبه، مالګینې اوبه، د مالګې محلول.
**مالګه** (málga) ښځ.م. ۱) نمک، سوډیم کلوراېډ؛ ۲) مزه، خوند، ښکلا، رونق.
**مالګه وال** (mālgawā́l) نر.م. مالګې والا، مالګه پلورونکی، مالګه لرونکی.
**مالګین** (mālgín) ص. نر.م. ۱) هغه خواړه چې مالګه یې زیاته وي؛ ۲) سکاڼ؛ ۳) د مالګې د رنګ یا کاڼ؛ ٤) دهلکانو د یوې لوبې نوم.
**مالګینول** (mālginawā́l) مص. مت. مالګین کول.
**مالګینی** (mālgináy) نر.م. یو ډول نبات دی.
**مالګینۍ** (mālgiṇə́y) ښځ.م. د ماشومانو یوه لوبه، مارګونۍ.

**مالگینېدل** (mālginedə́l) مص. ل. ۱) مالگین کېدل، د مالگې خوند پیدا کول؛ ۲) مج. خوږ تیا، جذابیت او سیر پکې پیدا کېدل.

**مالنگو** (mālangū́) نر.م. ملنگان، یوه دوایي ده.

**مالڼ** (mālə́ṇ) ښځ.م. ۱) محبوب، معشوق؛ ۲) دوه کلن، دوه غابښی؛ ۳) مالیاره، مالنه.

**مالنه** (mālə́ṇa) ښځ.م. ۱) محبوبه، معشوقه؛ ۲) دوه کلنه، دوه غابښې؛ ۳) د مالي مؤنث، د باغ ساتونکې، مالیاره، مالڼ.

**مالوچ** (mālū́č) نر.م. هغه پنبه چې پنبه دانه ترې کښل شوې وي.

**مالوف** (mālū́f) ص.مف ۱) روږدی، عادت شوی، بلد شوی؛ ۲) خوږ، عزیز.

**مال ومنال** (mālūmanā́l) نر.م. ۱) مال و دولت، مال و جایداد، مال و اسباب؛ ۲) مرتبه.

**ماله** (mālá) ښځ.م. ۱) د لرګي تخته چې بزګران یې د پټیو دهوارولو لپاره کاروي.؛ ۲) و.ګ. مالره؛ ۳) دجولاګانو برش.

**مالي** (mā́li) نر.م. ۱) مالیار، باغوان؛ ۲) ص. مال ته منسوب.

**مالیات** (mālyā́t) ښځ.ج. ټېکس.

**مالیاتي** (mālyā́ti) ص. د مال سره تړلی، د مال له معاملاتو سره اړوند، د مالیې.

**مالیار** (mālyā́r) نر.م. باغوان.

**مالیت** (mālyát) نر.م. دولت، مال، پانګه.

**مالیون** (mālıyū́n) ص. ق. قریب، نیږدې، جوخت.

**مالیه** (mālyá) ښځ.م. ۱) کسوټ؛ ۲) د محکمې مال ټېکس؛ ۳) د ځمکې د حاصلاتو محصول.

**مالېدل** (māledə́l) ص. ل. ۱) د ښځینه څاروي ټېرېدل، مال کېدل؛ ۲) غاړه ایښودل.

**مالیده** (mālidá) ښځ.م. ۱) یو ډول پشمي رخت؛ ۲) ص. مښلی شوی؛ ۳) هغه ډوډۍ چې غوړې او بوره ورسره ګډ شوي وي.

**ماما** (māmā́) نر.م. د مور ورور.

**ماماخېل** (māmāxél) نر.ج. د مور ټبر، ماماګان ماماګنۍ، مامازي.

**ماما غوږ** (māmāğwáẓ) نر.م. یو ډول خوږ نبات دی چې اوم خوړل کېږي.

**ماماغواګۍ** (māmāğwāgáy) ښځ.م.ج. یو ډول خاکي رنګه حشره ده چې ډېرې پښې لري.

**ماماګلوي** (māmāgalwí) ښځ.م. د ماما تابه اړیکه، ماما ولي.

**مامته** (mamáta) ښځ.م. د کروندې ځمکه چې چاپېره ترې دېوال وي.

**مامضۍ** (māmaza) ټېر شوی، هغه چې ټېر وي.

**مامن** (māmán) نر.م. د أمن اود ارام ځای، پناهګاه.

**مامن کوټ** (māmankūṭ) نر.م. و.ګ. مامن.

**مامور** (māmū́r) نر.م. ۱) ملازم؛ ۲) پر کومه دنده ګومارلی، ذمه دار کړای شوی.

**مامورول** (māmūrawə́l) مص. مت. مقررول، په څه عهده لګول، په کومه دنده ګومارل.

**مامورېدل** (māmūredə́l) مص. ل. پر څه عهده لګېدل، مقررېدل، مقرر کېدل.

**ماموس** (māmū́s) نر.م.ج. خیرن خچن، خوسا.

**مامون** (māmū́n) ص. نر.م.ج. محفوظ، په امن.

**مامونکه** (māmūnka) ښځ.م. مامولکه، د یوې مرغۍ نوم دی.

**ماموی** (māmū́y) نر.م. وچ زردالو، یو ډول مېوه.

**مامي** (mā́mi) ښځ.م (ج. مامي ګانې) د ماما ښځه.

**مامېره** (māmerá) ښځ.م. د یوه غرني بوټي جرړه چې د سترګو دوا ترې جوړوي، ممېرا.

**مانا** (mānā) نر.م. ۱) د تشبیه توری، په رنګ، په شان، ورته؛ ۲) د معنی مفغن؛ ۳) غیرت، همت.

**ماناپوهنه** (mānāpohaná) ښځ.م. د مانا پېژندنې علم، علم المعاني، معنی شناسي.

**ماناتوکی** (mānātokáy) نر.م. تر ټولو کوچنی مانیز ګرامري توکی (عنصر).

**ماناکښون** (mānākṣ̌ūn) نر.م. د مانا کښنې سیستم، هغه لیکنی سیستم چې په ټولیز ډول (انځوریز، اندیز یا ویېز) درېواړه سیستمونه راخلي.

**مانانوم** (mānānūm) نر.م. مانیز نوم، معنی اسم.

**ماناونج** (mānāwánj) نر.م. مانیز بدلون، مانیز تغییر.

**مانته** (māntá) ښځ.م. ړمنغ، ړومنغ.

**مانج** (mānj) ص. ۱) صفا، پاکیزه، وینځلی؛ ۲) نر.م. غاښور چې بزګر پرې ځمکه سموي.

**مانجو** (mānjáw) نر.م. ترهدیرې تاوشوی دېوال.

**مانجول** (mānjawál) مص. مت. وینځل، پاکول، صفا کول، مانج کول.

**مانجوه** (mānjawá) ښځ.م. کاسه.

**مانجه** (mānjá) ښځ.م. ۱) آریومي، ۲) ینجغ؛ ۳) جندرا؛ ٤) هغه تار چې ګډي پران جګوي.

**مانجي** (mānji) ښځ.م. ۱) د نجلۍ له لوري د واده بلنه؛ ۲) دجنجي ضد ورابانې؛ ۳) نر.م. مانګی ملاح، مانی، لمبوزن.

**مانجېدل** (mānjedál) مص. ل. پاکېدل.

**مانجی** (mānjáy) ښځ.م.ج. وریېزه، ورابانې، اینکه.

**مانځل** (mānǯál) مص. مت. عزت وربښل، قدرمن کول، نمانځل.

**مانځه** (mānǯá) نر.م. د مونځ مغیره حالت، لمانځه، لمونځ، عبادت.

**مانځي** (mānǯi) ص. پاک، صفا، د لمانځه ور.

**ماندره** (māndrá) ښځ.م. ۱) جوړتګ؛ ۲) تناوی، مرانده؛ ۳) ګیله؛ ٤) د خیمې رسۍ.

**مانده ګی** (māndagí) ښځ.م. ۱) ستومانې، مانده توب، ستومانتیا؛ ۲) کمزورتیا.

**مانده** (māndá) ص. نر.م. ۱) کمزوری، خوار، تپ؛ ۲) ستړی، ستومانه؛ ۳) ښځ.م. د سېلاب داوبو لاره، خوړ، رود، لښ.

**ماندینه** (māndiná) ښځ.م. ماینه، ښځه، مادینه.

**مانډه** (mānḍá) ښځ.م. ۱) خاپ، تاپ، د پلې نښه؛ ۲) خاورین لوښی؛ ۳) خپر، جونګړه.

**مانډهٔ** (mānḍa) نر.م. د منډل له فعل څخه داستمراري ماضي د غایب واحد صیغه.

**مانع** (mānị́ʕ) فا.ص. ۱) بندوونکی، ایساروونکی، منع کوونکی؛ ۲) د الله یو صفتي نوم.

**مانعه** (mānịʕá) ښځ.م. ۱) ایسارونه، مخنیوی؛ ۲) صفت، د مانع مؤنث.

**مانګړ** (mānga̤ṛ) نر.م. ګړ، کوچنی ترین ګرامري مانیز یوون (واحد)، تګمیم، مورفیم.

**مانمو** (mānmū́) ښځ.م. یو ډول بوټی دی.

**مانموله** (mānmū́la) ښځ.م. یو دښتي بوټی دی.

**مانند** (mānánd) د تشبیه توری. په شان، په رنګ، په څېر، غوندې، مثال.

**مانو** (mā́nū) ښځ.م. د نارینه وو یو ډول رخت دی.

**مانوس** (mānū́s) ص.ف. روږدی، بلد، عادت.

**مانوسیت** (mānūsét) نر.م. خوښه، توجه، پام، پاملرنه، خیال.

**مانه** (mānā́) ښځ.م. زیاتره له ګیلې سره د مهمل په ډول راځي، ګیله، سرټکونه، شکایت.

**مانی** (mānáy) ښځ.م.ج. د ماما د ښځې لقب.

**مانیز** (mānīz) نر.م. مانا ییز، معنوي، مانوي.

**مانګی** (māngáy) نر.م. بېړۍ چلوونکی، ملاح، ماڼوګی، ماڼو، د بېړۍ مالک، مانی.

**ماڼو** (māṇū) نر.م. ۱) و.ګ. مانګی؛ ۲) د یوه بوټي نوم؛ ۳) یو ډول میوه ده؛ ٤) په دود او دستور پوه، مهذب؛ ٥) ماکو، تاکر، بې لېښې مچۍ.

**ماڼوګی** (māṇūgáy) نر.م. د ماڼو تصغیر نوم.

**ماڼووالي** (māṇūwāli) ښځ.م. بېړیوالي، د بېړۍ چلونې اداره، دریانوردي.

**ماڼه** (māṇá) ښځ.م. (ج. ماڼې) ګیله، شکوه.

**ماڼیجن** (māṇižə́n) ص. نر.م. ګیله من، خفه، ناراضه.

**ماڼیجوت** (māṇijūt) نر.م. د کانۍ نه راډېخوا د څرمنې نرۍ غونډې پټه چې لاندې جوترو ته رسېدلې وي.

**ماڼیګر** (māṇigár) ص. ګیله من، مرور، خفه.

**ماڼې** (māṇé) ښځ.ج. ۱) د ماڼه جمع؛ ۲) د اوریشو د کرلو ځمکه.

**ماڼۍ** (māṇə́y) ښځ.نب. ۱) قصر؛ ۲) مورچه.

**ماوا** (māwā́) ښځ.م. ۱) د امن ځای، پناه ځای؛ ۲) د ښېر ته راتلو ځای؛ ۳) اصل، جوهر.

**ماوت** (māwát) نر.م. ۱) فیل ساتونکی، مهاوت، پیلبان، پیلبه؛ ۲) ص. هغه سړی چې خلاصي ترې نه وي.

**ماورا** (māwarā́) ص. وروسته، هغه خوا، پورې غاړه.

**ماهودانه** (māhūdāná) ښځ.م. و.ګ. جمال کوټه.

**ماهي** (māhí) نر.م. کب، مهی.

**ماهیت** (māhyát) نر.م. اصل، جوهر، مغز.

**ماهي خورک** (māhixorák) نر.م. کب خور، یو ډول مرغۍ چې ماهیان خوري، ماهي خوار.

**ماهي غوږ** (māhigwáẓ) نر.م. صدف، موتي لال.

**ماهي ګیر** (māhigír) نر.م. کب نیوونکی.

**مایاګولي** (māyāgoli) ښځ.م. د هلکانو د یوې لوبې نوم دی.

**مایي** (māyí) ښځ.م. موږ، په نکریزو سور کړی لاس چې ورغوی او د ګوتو بندونه سپین وي.

**مایچه** (māyčá) ښځ.م. (ج. مایچې) مینچه.

**مایع** (māyéʿ) ښځ.م. اوبلن، بهېدونکی څیز، نرم څیز.

**مایک** (māyk) نر.م. و.ګ. مایکروفون.

**مایکروسکوپ** (māykrūskūp) نر.م. ذره لیدی، خورد بین، ذره بین.

**مایکروفون** (māykrofū́n) نر.م. د اواز د لوړولو د آلې هغه برخه چې خولې ته نیول کېږي.

**ماین ایښوونی** (māynišūnay) نر.م. ماین ایښونکی، ماین ایښودونکی، ماین ګذار.

**ماین پاک** (māynpāk) فا. نر.م. ماین پاکوونکی، ماین شنډوونکی کس یا آله.

**ماین پاکي** (māynpāki) ښځ.م. ماین پاکونه، ماین شنډونه.

**ماین شنډونه** (māynšanḍawəna) ښځ.م. ماین پاکي، ماین خنثی کونه.

**ماین شنډوونکی** (māynšanḍawūnkay) فا. نر.م. ماین پاک، ماین خنثی کونکی.

**ماینه** (māyná) ښځ.م. ماندینه، ارتینه، مېرمن.

**مایوره** (māyū́ra) ښځ.م. د اتوار ورځ، د دویم ورځ، د یکشنبې ورځ.

**مایوس** (māyū́s) ص. نر.م. نهیلی، ناکام، زړه ماتی، ارماني، ارمانجن.

**مایوسي** (māyū́si) ښځ.م. نهیلي، خواشینتیا، ناکامي.

**مایه** (māyá) ښځ.م. ۱) جوهر، اصل؛ ۲) پانګه؛ ۳) هغه شیدې چې تروې شي، تومنه، مېره؛ ٤) هغه اوبه چې کبهو، کوب، د یدای یې وروکی وي، او ببر وینښتان ولري؛ ۲) یوه غونډۍ وره کوپی یا کړی؛ ۳) د سانقه مایه، کوتی یا ژور ځای: ٥) شته، رأس المال.

**مایه پایه** (māyapāyá) ښځ.م ۱) پانګه، سرمایه؛ ۲) موري، ټول کاینات.

**مایه ناز** (māyanāz) ص. ۱) د فخر ور، مشهور، نامتو؛ ۲) معشوق.

**مایین** (māyín) نر.م. د غـز دوني داني، د غـز د وني تخم.

**مباح** (mobāh) ص. جایز، روا، چې نه اجر لري او نه عذاب.

**مباحثه** (mobāhısá) ښځ.م. مناظره، تکرار، سوال او ځواب، له یوه بل سره بحث کول.

**مبادا** (mabādā) اد. خدای دې نه کوي، خدای مه کړه، که داسې نه وي، که چېرې، هسې نه.

**مبادله** (mubādıla) ښځ.م. بدلي، بدلون.

**مبادي** (mabādi) ق. شروع، پیل، اغاز، ابتداء.

**مبارزه** (mubārızá) ښځ.م. جنګ، جګړه، شخړه.

**مبارک** (mubārák) ص. له برکت نه ډک، نېک، پاک، نېکمرغه، بختور.

**مبارکي** (mubāraki) ښځ.م. د خیر دعا، نېکي.

**مباشرت** (mubāširát) فا.ص. غوونه، د ښځې او مېړه یووالی، کوروالي، جماع.

**مبالغه** (mubālığā) ښځ.م ۱) له ورې خبرې نه لویه خبره جوړول، دروغ؛ ۲) تبلیغ، اغراق، غلو.

**مباهات** (mubāhāt) نر.م. فخر، ویاړ، لویي.

**مبتدا** (mubtadā) نر.م. ۱) پیـل، اغاز، شروع، ابتداء؛ ۲) صفت.

**مبتدي** (mubtadí) نر.م. پیلوونکی، ابتدا کوونکی.

**مبتذل** (mubtazál) ص.نر.م. ذلیل، خوار، ړټ.

**مبتکر** (mubtakír) نر.م. د نوې څیز راویستونکی.

**مبتلا** (mubtalā) ص. ښځ.م. ګرفتار، ګېر، اخته، نښتی، لګیا، بندیوان، راایسار.

**مبحث** (mabhás) نر.م. بحث، د بحث موضوع.

**مبدا** (mabdā) نر.م. د شروع کېدو ځای، د جوتېدو یا ځرګندېدو ځای؛ ۲) ابتداء، پیل، بنیاد، جرړه.

**مبدل** (mubadál) ص. نر.م. بدل کړای شوی، اړول شوی.

**مبرا** (mubarā) ص. نر.م. ۱) ازاد، خپلواک، بري؛ ۲) پاک، سپېڅلی؛ ۳) بېزار.

**مبرز** (mabráz) نر.م. چرچوبی، چرچوبی، ټټی.

**مبرهن** (mabrahán) ص. پـه دلیـل ثابت شوی، ځرګند، ښکاره، کوتلی، مضبوط.

**مبشر** (mubašér) ص.نر.م. زېـری اورروونکی یا رسوونکی، زېری کوونکی.

**مبصر** (mubasír) ص.نر.م. ۱) بل پوهوونکی، کره کوتنه معلوموونکی، لیدونکی؛ ۲) صراف.

**مبعوث** (mabʿūs) ص. مف. لېږلی شوی، استولی شوی، پیدا کړی شوی.

**مبلغ**[1] (mubalíğ) فا.ص. تبلیغ کوونکی، وعـظ کوونکی، رسوونکی.

**مبلغ**[2] (mabláğ) نر.م ۱) رقم، مقدار، د مال اندازه؛ ۲) جمع، کل، ټول.

**مبني** (mabní) ص. بنیاد اېښودل شوی، د بنسټ د اېښودو ځای.

**مبهم** (mubhám) ص. نـر.م. ناځرګند، داسې خبره چې مطلب یې ځرګند نه وي، مشکوک، شکي.

**مبهوت** (mabhūs) ص. حیران، وارخطا.

**مبهي** (mubahí) ص. شهوت زیاتوونکی.

**مبین**(۱) (mubín) نر. م. ظاهر، ښکاره، څرګند.

**مبین**(۲) (mubín) ص. بیان شوی، ښکاره کړای شوی.

**متابعت** (mutābıʔát) نر. م. پیروي، اطاعت.

**متأثر** (mutāsír) ص. نر. م. اغېزمن، چې اغېز پرې شوی وي، چې اثر یې قبول کړی وي.

**متأخر** (mutāaxír) ص. نر. م. وروسته راتلونکی.

**متارکه** (mutārıká) ښځ. م. وولـه، اوربند، عارضي روغه، کاڼي اېښودل.

**متأسف** (mutāsíf) نر. م. ج. افسوس کوونکی.

**متأسفانه** (mutāsıfāná) ق. له افسوس سره.

**متاع** (matā́ʔ) ښځ. م. مال و اسباب، پانګه.

**متانت** (matānát) نر. م. ټینګتیا، دروندوالی، پایښت، د خیالاتو درستوالی، مضبوطیت.

**متاهل** (mutāhíl) ص. نر. م. ج. د واده خاوند، د اهل و عیال خاوند.

**متاهله** (mutāhíla) ښځ. م. د متاهل ښځینه بڼه؛ وګ. متاهل.

**متبادله** (mutabādılá) ص. ښځ. م. هغه چې بدل شوی وي.

**متبحر** (mutabahír) نر. م. ج. ۱) ډېر ستر عالم، علامه؛ ۲) ډېر مالدار؛ ۳) ډېرډوبېدونکی، غرق.

**متبدل** (mutabadíl) ص. نر. م. بدل شوی.

**متبرک** (mutabarík) ص. نر. م. د برکت والا، برکتي، پاک، سپېڅلی، عزتمند، ښادمن.

**متبسم** (mutabasím) نر. م. خندېدونکی.

**متبع** (mutabíʔ) ص. نر. م. په چا پسې تلونکی، پیروي کوونکی، پیرو.

**متبنی** (mutabánā) ص. نر. م. دیني زوی، بالکی، نومولی (نوملی) زوی.

**متبوع** (matbū́ʔ) ص. نر. م. هغه څوک چې د چا پیروي کولای شي، مشر، پېشوا.

**متجاوز** (mutajāwíz) ص. نر. م. ج. تېری کوونکی، تجاوز کوونکی، له خپل برید نه تېرېدونکی.

**متجسس** (mutajasís) ص. نر. م. جاسوس، پلټونکی.

**متحارب** (mutahāríb) ص. نر. م. په خپلو منځو کې جنګ کوونکي، په خپلو کې سره ښکېل.

**متحد** (mutahíd) نر. م. اتحاد ساتونکی، متفق.

**متحد المال** (mutahıdulmā́l) ص. نر. م. عمومي خبرتیا، عمومي اطلاع، عمومي مکتوب.

**متحرک** (mutaharík) ص. نر. م. خوځند، حرکت کوونکی، خوځېدونکی، روان، ګرځېدونکی.

**متحمل** (mutahamíl) ص. نر. م. زغمونکی، برداشت کوونکی، وړونکی، صابر، مستقل مزاجه.

**متحیر** (mutahayír) ص. نر. م. ج. هېښند، هک پک، تعجب کوونکی، په حیرت کې، حیران.

**متخلص** (mutaxalís) ص. نر. م. تخلص لرونکی.

**متخیل** (mutaxayíl) ص. نر. م. په خیال کې راوستونکی، خیال کوونکی، خیالي، وهمي.

**متخیله** (mutaxayılá) ښځ. م. د خیال قوت، دماغ.

**متداول** (mutadāwíl) ص. نر. م. ج. هغه چې وار په وار اخیستی شي، لاس په لاس ګرځېدونکی، مروج، رسمي.

**متدین** (mutadayín) ص. نر. م. دیندار، د پخې عقیدې خاوند.

**متذبذب** (mutazabzáb) ص. نر. م. تذبذب کوونکی مذبذب، دوه زړی، وسواس کوونکی.

**متذکره** (mutazakırá) ص. نر. م. نوموړی، یاد شوی، بیان کړای شوی، په یاد کړای شوی.

**متر**(۱) (matár) نر. م. ۱) هغه هلک چې په یوه لوبه کې مشر یا میر وي؛ ۲) اشنا، دوست، ملګری.

متر[۲] (mátar) نر.م. هغه تازه کورت چې لا وچ شوي نه وي.

متر[۳] (mıtár) نر.م. د اندازه کولو یو واحد دی.

مترادف (mutarādíf) ص. نر.م.ج. هغه لغتونه چې شکلونه یې بېل او مانا یې یوه وي.

متراوړ (mutrāwaṇ) ص. نر.م. هغه هلک چې په خوب کې متیازې کوي؛ متیازن.

متراوڼه (mutrāwaṇa) ص. ښځ.م. د متراوړ ښځینه بڼه.

مترجم (mutarjím) نر.م. ژباړن، ژباړونکی.

متردد (mutaradíd) ص. نر.م.ج. په شک کې، زړه نازړه.

مترډ (mutaríḍ) ص. نر.م. په متیازو لړلی.

مترشح (mutarašíh) نر.م. ۱) څڅېدونکی؛ ۲) عیان، جوت، څرګند.

مترصد (mutarasíd) ص.نر.م. انتظار کوونکی، څارو، څارن، څارونکی.

مترغزې (matrağzé) نر.م.ج. ماغزه، دماغ.

مترقي (mutaraqí) ص. نب. پرمختللی، پرمختګ کوونکی.

مترکه (matraká) ښځ.م. وړوکی څټک، څټکی.

مترنم (mutaraním) نر.م. ۱) سندرغاړی؛ ۲) سندرېز.

متروک (matrūk) ص. نر.م. ترک کړی شوی، ختم کړی شوی، پرېښوی شوی.

متروکه (matrūka) ښځ.م. قمچینه.

متره (matrá) ښځ.م ۱) نه پیدا کېدونکی، نایاب، حرام؛ ۲) قیمتي، نادر؛ ۳) چرچرانګه، یوه مرغۍ.

متره (mátra) ښځ.م. ۱) همت، طاقت؛ ۲) ماسته، چکه، خرېړی؛ ۳) توان، سیک، ځواک.

متریکه (matriká) ښځ.م. چابک، متروکه.

متری (matráy) ښځ.م. وړوکی ګوډی.

متړ (matáṛ) ص. نر.م. ۱) بې وقوف، کم عقل، بې عقل؛ ۲) متیازن، متهانځن.

متزلزل (mutazalzíl) نر.م.ج. خوځېدونکی، رپېدونکی، رېږدېدونکی، زړه نازړه.

متساوي (mutasāwí) ص. نب. د یوه بل سره مساوي، برابر، انډول.

متسلسل (mutasalsíl) ق. پرله پسې.

متشابه (mutašābíh) ص. ښځ.م. په یوه شکل، سره ورته، په یوه ډول.

متشاعر (mutašāʂír) نر.م. نقلي شاعر، هغه سړی یا شاعر چې د بل چا شعرونه په ځان پورې تړي.

متشدد (mutašadíd) ص. نر.م. تشدد کوونکی، سختي کوونکی.

متشکر (mutašakír) ص.نر.م. منندوی، شکر کوونکی.

متشکل (mutašakíl) ص. نر.م. په یوه شکل کېدونکی، شکل اختیاروونکی.

متصادم (mutasādím) نر.م. ډغرې وهونکی.

متصدي (mutasadí) نر.ښځ.م. حساب کتاب کوونکی، منشي، کاتب، پیکار.

متصرف (mutasaríf) ص.نر.م. ښکېلاکګر، قبضه کوونکی.

متصل (mutasíl) ص. نر.م. نېږدې، جوخت.

متصوف (mutasawíf) ص.نر.م. صوفي جوړېدونکی، صوفي.

متضاد (mutazád) ص. نر.م. برخلاف، اپوټه.

متعارف (mutaʂāríf) نر.م. ۱) یو بل پېژندونکی سره واقف؛ ۲) مشهور، معروف.

**متعجب** (mutaʂajíb) ص. نر.م. حیران، هک پک، اریان، گوته په خوله.

**متعدد** (mutaʂadíd) ص. نر.م. ج. ډېر ګڼ، بې شمېره، له یوه نه زیات.

**متعدي** (mutaʂadí) ص. نر.م. ج. له حده زیاتېدونکی؛ ۳) هغه فعل چې مفعول غواړي.

**متعصب** (mutaʂʂíb) ص. نر.م. کینه ور، بغضي، تعصب کوونکی.

**متعلق** (mutaʂlíq) ص. نر.م. اړوند، تعلق لرونکی، اړیکه لرونکی، علاقه لرونکی.

**متعین** (mutaʂayín) ص. نر.م. مقرر کړای شوی، تعیین کړای شوی.

**متغیر** (mutağayír) نر.م. بدل شوی، تقسیم شوی، وېشلی، بې ثباته، پرېشان.

**متفرق** (mutafaríq) نر.م. بېلابېل، خپاره واره.

**متفق** (mutafíq) ص. نر.م. ج. متحد، یو موټی، اتفاق کوونکي، ګډون کوونکي، شامل، ګډ.

**متفکر** (mutafakír) ص. نر.م. ج. فکر کوونکی، فکرمند، خفه.

**متقابل** (mutaqābíl) ص. نر.م. ج. د یوه بل سره مقابله کوونکی، مخالف، مخامخ.

**متقارب** (mutaqārib) نر.م. ۱) یوه بل ته نږدې؛ ۲) د عروضو په علم کې د یوه بحر نوم.

**متقاضي** (mutaqāzí) ص. غوښتونکی.

**متقاعد** (mutaqāsíd) ص. نر.م. ۱) څاتنه، ګوښی؛ ۲) تقاعد شوی.

**متقدم** (mutaqadím) ص. نر.م ۱) مخکې تلونکی؛ ۲) پخوانی، زوړ، لرغونی.

**متقي** (mutaqí) ص. نب. پرهېزګار، نېک، زاهد.

**متکا** (mutakā) ښځ.م. د ډاډ ځای، د ډډې لګولو ځای، تکیه ګاه، متکه.

**متکبر** (mutakabír) نر.م. ۱) کبر کوونکی، غاوره، کبرجن؛ ۲) د خدای جل جلاله یو صفتي نوم.

**متکلم** (mutakalím) نر.م. خبرې کوونکی.

**متل** (matál) نر.م. یوه لنډه جمله چې ستر کلتوري او علمي ارزښت په کې پروت وي.

**متلاشي** (mutalāší) ص. نر.م. تیت و پرک، مضمحل، هغه څه چې اجزا یې سره تیت وي.

**متلاطم** (mutalātím) ص. نر.م. په جوش کې، څپې څپې، موج لرونکی، د سیند څپې.

**متلون** (mutalawín) ص. نر.م. رنګ بدلوونکی، رنګ په رنګ کېدونکی، خوی بدلوونکی.

**متلي** (matalí) ص. نر.م. هغه سړی چې په خبرو کې زیات متلونه راوړي یا یې کاروي.

**متمدن** (mutamadín) ص. نر.م. ج. مهذب، تمدن لرونکی، د ښاراوسېدونکی، فرهنګیالی.

**متمرد** (mutamaríd) ص. نر.م. ج. یاغي، باغي.

**متمني** (mutamaní) نر.م. هیله من.

**متموج** (mutamawíj) ص. نر.م. څپې وهونکی، څپاند، غورځنګ.

**متمول** (mutamawíl) نر.م. مالدار، دولتمند.

**متن** (matán) نر.م. د کتاب د منځ اصل عبارت.

**متنازعه** (mūtanāzısá) ص. نب. هغه څیز چې د هغه په اړه تنازعه وي.

**متناقص** (mutanāqís) ص. نر.م. ج. سره اختلاف لرونکی، سره مخالف، د یوه بل ضد.

**متنفر** (mutanafír) نر.م. نفرت کوونکی، زړه بدی، بېزار، خوابدی، کرکجن.

**متنګ** (matáng) نر.م. پړی، رسی، بدریشه.

**متنوع** (mutanawíʂ) ص. نب. رنګارنګ، ډول ډول، هغه چې زیات ډولونه ولري.

**متوازن** (mutawāzín) ص. نب. سره برابر، انډولیز.

**متوازي** (mutawāzí) ص. نب. په یوه فاصله؛ هغه خطونه چې سیده یو بل ته مخامخ په یوه واټن کې وي او یو بل سره نه قطع کوي.

**متواضع** (mutawāzı؏) ص. نب. ۱) کمینه، عاجزي کوونکی؛ ۲) تواضع کوونکی، عاجز.

**متواله** (matwāla) فا. نر.م. نشه، مست، متولا.

**متوجه** (mutawajjh) ص.نب ۱) ځیر، پام کوونکی، توجه کوونکی، خیال کوونکی؛ ۲) مخاطب.

**متوسط** (mutawasít) ص. نر.م. ج. د منځ، د اوسطې درجې، منځنی، منځومانه.

**متوسطه** (matawasıtá) ښځ. م. منځنی ښوونځی، له اوومه تر نهم ټولګي پورې ښوونځي.

**متوطن** (mutawatín) نر.م. ج. اوسېدونکی، د وطن اصلي هستوګن.

**متوفیٰ** (mutawafā́) ص. نب. مړ، وفات شوی.

**متوفي** (mutawafí) ص. نب. مړکېدونکی، وفات کوونکی.

**متوقع** (mutawaqí؏) ص.نب. هیله من، امیدوار.

**متوکل** (mutawakíl) ص. نر.م. بروسه کوونکی، توکل کوونکی، توکلي.

**متولد** (mutawalíd) نر.م. ج. زېږېدلی، پیدا شوی.

**متولي** (mutawalí) ص. نر.م. سرپرست، هغه څوک چې یو کار ورسپارل شوی وي.

**مته** (matá) ښځ.م ۱) برمه، تبخونکی؛ ۲) دلرګي یا بل څیز د سوري کولو آله؛ ۳) ځل، وار، نوبت.

**متی** (matáy) ښځ.م. اوبه، نالی، لښتی.

**متی** (matáy) نر.م. چابک، تېز، چالاک.

**متیازاړی** (mıtyā́zāṛay) نر.م. د متیازو لار، د میتیازو لاره.

**متیازن** (mıtyāzán) ص.نر.م. متیازک، متراوڼ، متیازڼ.

**متیازنی** (mıtyā́zanáy) ښځ.م. مثانه، د متیازو پوکنی، شاشدان.

**متیازڅک** (mıtyā́zcak) نر.م. د متیازنۍ ناروغي، سلسل البول.

**متیازې** (mıtyā́ze) ښځ.ج. ادرار، خالي جواب چای.

**متین** (matín) ص. نر.م.ج. مضبوط، کلک.

**متېره** (materá) ښځ.م. د ترکارۍ یو ډول دی.

**مټ** (maṭ) نر.م. ۱) د اوږې نه تر څنګل پورې د لاس برخه؛ ۲) هاند، هڅه، عزم؛ ۳) چاتۍ، خوم، منګی؛ ٤) د کټ تابع مهمل، بالکل، دغه شان.

**مټ** (maṭ) نر.م. د سېلاب پسته خټه، ریګ خاوره، لهه.

**متا** (maṭā́) ښځ.م. د شړومبو کټوی، متی.

**متاک** (maṭā́k) نر.م. ۱) کلک غوز چې چغزی په کې نه وي، متکور؛ ۲) یوه اغزنه ونه.

**متاکو** (maṭākó) نر.م. یو ډول واښه دي چې د اوبو د سر د پاسه وي.

**متاکه** (maṭā́ka) ښځ.م ۱) هغه پرسوب چې د ماشې، ورږې یا بل خزنده د چیچلو له امله ښکاره شي؛ ۲) ګرمکه دانه؛ ۳) یو رنځ دی؛ ٤) کلکه، سخته.

**متاکې دانې** (maṭākedā́né) ښځ.م. ج. د وړې هغه دانې چې پوره پخې نه وي.

**متاکی** (maṭākáy) ص. نر.م. کلک، سخت.

**متان** (maṭā́n) نر.ج. چاقوان، چړې، توري.

**متایي** (mıṭāyí) نر.ج. ځانګړي خواږه خواړه، خوږ څیز، شیریني.

**مټ تړ** (maṭṭár) نر.م. هغه تعویذ چې په مټ باندې تړل کېږي، مټ تړونی.

**متخ** (maṭáx) نر.م. یو خړ رنګی ملخ دی، ملخی.

**متړ** (maṭár) نر.ج. ۱) یو ډول سبزي ده؛ ۲) یو ډول زیړ رنګه چنې.

متره (maṭrá) ښځ.م. متره، وګ. ختپهل.
متک (maṭák) ص. نر.م. ۱) غوز؛ ۲) ناز نخره.
متکاوی (maṭkáway) نر.م. مښود، زيار، کړاو، زحمت، محنت.
متکور (maṭkwár) ص. نر.م. له وخته مخکې پوخ شوی؛ ۲) په يوه کار کې ځان نا غرضه کول.
متکورې (máṭakwáre) ص.ښځ.ج. دجوارو هغه نيني چې په چيچلو کې سختې وي.
متکی (maṭkay) ښځ.م ۱) د پټکي هغه برخه چې په اوږو راپرته وي، مچکی؛ ۲) واکی.
متکی[1] (maṭakáy) نر.م. موټکی، جلق وهونکی.
متکی[2] (maṭkáy) نر.م. ۱) هغه پسول چې ښځې يې په مټ ترې، بازوبند؛ ۲) خم.
مټ ګل (maṭgwál) نر.م. هغه کشيده کاري چې په لستوڼو باندې کېږي.
مټ ملي (maṭmalí) نر.ج. د سريو ګردې ځنې، څونکي.
متن (maṭán) ص. نر.م. لمده او وچه ځمکه، وتره.
متور (maṭawár) ص.نر.م. پياوړی، ځواکمن، متې لرونکی، د تکړه کورنۍ لرونکی، طاقتور.
متوری (maṭoráy) نر.م.دوپره، متاکه، يو ډول دانه.
متورۍ (maṭoráy) ښځ.ج. ۱) وګ. متورې؛ ۲) تناکه؛ ۳) مېخ؛ ٤) د متوری مؤنث.
متونګه (maṭūngá) ص. ښځ.م. د متيزې لور.
متونګی (maṭūngáy) ص. نر.م. دمتيزې زوی، حرامونی، متنګی.
متونګۍ (maṭūngay) ص.ښځ.م.ج. متيزه، هغه ښځه چې له بل چا سره وتښتي.
متہ (maṭá) ص. ۱) لټ، کاهل، بېکاره؛ ۲) ښځ.م. پايه، ستون؛ ۳) مټ؛ ٤) طاقت؛ ٥) خوم، چاتی؛ ٦) سوړر؛ ۷) ژېړ وزمه نرمه او پسته خاوره، نرمه ختېه؛ ۸) د ونې تنه؛ ۹) ارم، بورجی؛ ۱۰) د ګنډلو ستن.
متی (maṭáy) نر.م. د حيواناتو يو ډول ناروغي ده.
متې (maṭé) ق. ايله بيله، متی، مټ، فقط، يوازې.
متيال (maṭyāl) نر.م. متور، زيارکښ، زيارګالی، زحمتکش.
متير (maṭír) نر.م. چيرچاړ، حمله، بريد.
متيران (maṭirān) نر.م. شراب خونه، ميکده.
متيز (maṭíz) ص. نر.م. هغه کس چې له پردې ښځې سره له کوره تښتېدلی وي، متيزک.
متيزتوب (maṭiztób) نر.م. د متيزه کېدو حالت، بې حيايي، متيزوالی، متيزتيا.
متيزه (maṭíza) ص. ښځ.م. هغه ښځه يا جنۍ چې له خپلې کورنۍ نه په پټه وتښتي.
متين (maṭín) ص. نر.م. له متينې خاورې جوړ.
متۍ[1] (maṭáy) ښځ.م. ۱) د اوبو د ساتلو خاورين لوښی، د شرومبو د شاربلو لوښی؛ ۲) دګنې بندونه چې په کې سترګه راخېژي؛ ۲) وګ. ځری.
مثال (misāl) نر.م. تصوير، صورت، نمونه، په رنګ، په شان، مثل، بېلګه.
مثانه (masāná) ښځ.م. متيازنۍ، د متيازو پوکنۍ.
مثبت (musbát) ص. نر.م. ۱) تصديق کوونکی؛ ۲) د منفي ضد؛ ۳) د ګرامر، رياضي، برق او نورو علومو يوه اصطلاح.
مثقال (misqāl) نر.م. ۱) د وزن يو مقدار، له ۲٤ نخودو سره برابر؛ ۲) معمولي شی، لږ وزن.
مثل (masál) نر.م. متل، مشهور قول، حکايت.
مثلاً (masalān) ق. د مثال په ډول، لکه چې.
مثلث (musalás) ص. نر.م. ۱) درې ګوټيز، درې ضلعيز؛ ۲) د نظم درې مصرع ييز بند.

**مثله** (muslá) ښځ.م. د مړي د غوږونو، پزې او نورو اندامونو پرېکونه.

**مثمر** (musmír) نر.م.ج. مېوه ورکوونکی، گټور.

**مثنیٰ** (musanā́) ښځ.م. ۱) دوه برابره، غبرگ، جوړه؛ ۲) له اصل سره سم نقل، دويم نقل.

**مثنوي** (masnawí) ښځ.م. هغه مسلسل نظم چې د هر بيت مصرع يې ځانته قافيه لري.

**مثيل** (masíl) ص. نر.م. ساری، نظير، مشابه، په شان.

**مجادله** (mujādalá) ښځ.م. جنگ جگړه، شور، بحث، هنگامه، غوربگ.

**مجاز** (majā́z) ص. نر.م. ۱) روا، اجازت ورکړی شوی، مختار؛ ۲) د حقيقت ضد، غيرحقيقي.

**مجازاً** (majāzán) ق. په مجازي توگه، فرضاً، د فرض په ډول.

**مجازي** (majāzí) ص. نر.م. غير حقيقي، فرضي، نقل، غير اصلي، مصنوعي.

**مجال** (majā́l) ښځ.م. ۱) ځواک، طاقت، دخل؛ ۲) د چکر ورکولو ځای؛ ۳) فرصت، وخت.

**مجامعت** (mujāmeʿát) نر.م. غوونه، جماع.

**مجاور** (mujā́wír) ص. نر.م. ۱) گاونډی، نږدې اوسېدونکی؛ ۲) د يوه زيارت جارو کوونکی.

**مجاهد** (mujāhíd) نر.م. کفارو پر ضد جهاد کوونکی، غازي، کوښښ کوونکی.

**مجاهده** (mujāhidá) ښځ.م. هڅه کوونکی، زيار گالونکی، د نفس د ناروا غوښتنو پر ضد جهاد، محنت، رياضت.

**مجبور** (majbū́r) ص. نر.م.ج. اړ، اړمن، بې وسه، غريب، ناتوان.

**مجبوراً** (majbūrán) ق. د اړتيا له امله، له بې اختيارۍ نه، د ناچارۍ نه، له بې وسۍ نه.

**مجبورول** (majbūrawə́l) مص.مت. اړ ايستل، اړ کول، بې اختياره کول، بې وسه کول.

**مجبورېدل** (majbūredə́l) مص. ل. اړ کېدل، بې اختياره کېدل، بې وسه کېدل، ناچاره کېدل.

**مجتنب** (mujtanáb) ص. نر.م. ځان ژغوروونکی، پرهېزگار، منع شوی، اجتناب کوونکی.

**مجتهد** (mujtahíd) ص.نر.م ۱) اجتهاد کوونکی، کوښښ کوونکی؛ ۲) ديني مشعر.

**مجدد** (mujadád) ص. نر.م.ج. نوی کوونکی، تجديد کوونکی، د مسلمانانو لوی عالم.

**مجذوب** (majzū́b) ص.نر.م. د جذبې په حالت کې، بې خوبه، مست، بې هوښه.

**مجرا**[1] (mujrā́) ښځ.م. ۱) د ډمانو د گډا او سندرو محفل؛ ۲) موجره، کټ شوی؛ ۳) منظور، قبول، منل شوی.

**مجرا**[2] (majrā́) ښځ.م. د اوبو د وتو لاره.

**مجرب** (mujaráb) ص. نر.م.ج. ازمايلی شوی، تجربه شوی، موثر، گټور.

**مجرد** (mujarád) ص. نر.م.ج. ۱) يوازې، ځانله، يو وزری؛ ۲) لونډ سری؛ ۳) له مادياتو پاک.

**مجردي** (mujaradí) ښځ.م. يوازېوالی، لونډ توب، ازادي.

**مجرم** (mujrím) ص.نر.م. گرم، جرم لرونکی، گناهکار، قصوروار، خطاوار.

**مجروح** (majrū́h) ص. نب. ټپي، زخمي، ژوبل.

**مجرور** (majrū́r) ص. نر.م. ۱) راکښلی شوی؛ ۲) هغه کلمه چې په پای کې يې کسره راغلې وي.

**مجره** (mujrá) ښځ.م. ۱) کهکشان؛ ۲) تحفه، ډالۍ، سوغات؛ ۳) د نڅا يو ډول.

**مجسم** (mujasám) ص. نر.م. ۱) بدن لرونکی، جسم لرونکی؛ ۲) تول؛ ۳) پلن.

**مجسمه** (mujasımá) ښځ.م. بت.

**مجلد** (mujalád) ص. نر.م.ج. پوښ والا، پوښ لرونکی، جلد شوی، هغه کتاب چې وقایې ورته لگېدلې وي.

**مجلس** (majlás) نر.م ۱) د کېناستو ځای، محفل، گپ شپ؛ ۲) تنگ تکور.

**مجلسي** (majləsi) نر.م ۱) گپ شپ خوښوونکی، جرگه مار، په مجلس کې شریک؛ ۲) سندرغاړی.

**مجله** (mujalá) ښځ.م. رساله، د بېلابېلو مقالو جونگ.

**مجمر** (majmár) نر.م. منقل، نغری، کوره، انگیتۍ چې سپېلنی په کې لوگی کېږي او د بگ هم پرې پخېږي.

**مجمع** (majmáʿ) ښځ.م. ۱) گڼه گوڼه، مجلس؛ ۲) د خلکو د راغونډېدو ځای.

**مجمل** (mujmál) ص. نر.م.ج. ۱) مختصر، لنډ، لنډ؛ ۲) غیر واضح، مبهم.

**مجملاً** (mujmalán) ق. په لنډو، مختصراً.

**مجمعه** (mujmaʿá) ښځ.م. مجمه، غوری.

**مجموعه** (majmūʿá) ښځ.م. ۱) جمع کړای شوی؛ ۲) راټول کړی شیزونه؛ ۳) د شاعرۍ، نثر یا نورو مضمونونو څخه جوړ کړی کتاب، رساله.

**مجموعي** (majmoʿí) ص. نر.م. ټول، سراسر، کلهم، همگي، تمامي.

**مجمه** (majma) ښځ.م. (ج. مجمې) غوری، د خوراک لوی لوښی، ښانک.

**مجن** (maján) نر.م. لینده، لیندۀ.

**مجنون** (majnūn) ص. نر.م. ۱) لېونی، پاگل؛ ۲) عاشق، مین، شیدا.

**مجوزه** (mujawızá) ص. ښځ. تجویز کړای شوی یا شوې، وړاندې شوی یا شوې، مقرر شوی.

**مجوسي** (majūsi) نر.م. اور لمانځی، اور لمانځونکی، داور عبادت کوونکی، دزردشتي مذهب پیرو، آتش پرست.

**مجهول** (majhūl) ص. نر.م. ۱) پټ، ناڅرگند؛ ۲) هغه فعل چې فاعل یې معلوم نه وي.

**مجی** (majə́y) ښځ.م. ۱) ناقه، اوښه؛ ۲) هغه رنځور چې له ناروغۍ نه تازه ښه شوی وي.

**مځکه** (maǰə́ka) ښځ.م. ځمکه، زمکه.

**مځگری** (maǰgə́ray) ص. نر.م. ژرنده گری.

**مچ** (məč) نر.م. ۱) وزر لرونکي حشره، مگس؛ ۲) زری، دودان، غټی؛ ۳) د تگ په وخت کې د ښپې اوښتل؛ ٤) ښځ.م. تیندک، ډغره.

**مچان** (mačā́n) نر.ج. د مچ جمع.

**مچان** (mačā́n) نر.م ۱) مورگه، ډډه، ځنده، موره؛ ۲) د زمریانو د ښکار لپاره په ونه کې جوړ کړلی لوړ ځای، جونگړه، منا.

**مچ بڼک** (mačbaṇák) نر.م. د مچانو دشړلو پکی، ببوزی، مچشړ، مچ غړینی، مچوژی.

**مچپړانگ** (mačprā́ng) نر.م. ۱) غټ مچ؛ ۲) جولا، غنه، غنې.

**مچخ** (mačáx) نر.م. ملخ، ملخی، یوه حشره.

**مچخړی** (mačxáṛay) نر.م. د مچانو هگی.

**مچر** (mačár) نر.م. د ونې کچه څانگه.

**مچری** (mačarə́y) ښځ.م.ج. له ماشونه د ځان ساتلو لپاره جالی، پشه خانه.

**مچرکي** (mačarké) ښځ.م. وچوکی، کمزوری.

**مچشړ** (mačšáṛ) نر.م. و.گ. مچ بڼک.

**مچ غړینی** (mačğaṛínay) نر.م. و.گ. مچ بڼک.

**مچغنه** (mačağna) ښځ.م. یوه تاریزه یا له مزریو نه جوړ آله چې د مټ په زور په کې کاڼي لېرې ویشتل کېږي. مچغنه، مچغونه، مچلوغزه.

**مچک** (mačák) نر.م ۱) وګ. مسور؛ ۲) کونتی، اړمکی، کنده؛ ۳) هغه لرګی چې په سر کې یې چنګک وي او د ونو ښاخونه پرې ماتوي.

**مچکه** (mačáka) ښځ.م. پېپه، پېپي، مچه، کوکی.

**مچکېره** (mačkéra) ښځ.م. د ګبینو مچې.

**مچکی** (mačkay) نر.م. سُربې ټوپک.

**مچګیرک** (mačgirák) نر.م. جولا، غنه، غنې.

**مچلک** (mačlák) نر.م. د مچغنې د رسۍ نرۍ سر.

**مچلکا** (mačalká) نر.م. مجلکا، مچلګه، موچلکا، ضمانت، اقرارلیک، لوظنامه، خبرداری.

**مچله** (mačlá) ص.نر.م. ۱) تیوکمار، تیوقي؛ ۲) غوړوالی.

**مچلی** (mačláy) ښځ.ج. ۱) د غوړونو ګانې، د غوړونو پسول؛ ۲) لښتې.

**مچمچی** (mačmačáy) ښځ.م.ج. وګ. مچلی.

**مچنه** (mačána) ښځ.م. پنه، څپلې، موچنه.

**مچو** (mačó) نر.م. مچکه، مچ.

**مچوړی** (mčaúṛay) ص. تاوراتاو، غوټې موټې، چوني مچونې.

**مچوژونی** (mačwažūnay) نر.م. مچشړ، مچشړونی، مګس کش.

**مچول** (mačawál) مص. مت. ښکلول، کوکس اخیستل، خوله اخیستل.

**مچونی** (mačūnáy) ښځ.م. وګ. بوګرۍ.

**مچوونی** (mačawūnay) نر.م. ښکلوونکی، بوسه ګیر، مچه اخیستونکی، کوکی اخیستونکی.

**مچونی** (mačūnay) ص.نر.م. رانغاړلی شوی.

**مچه** (mačá) ښځ.م. پېپه، پېپی کوکی

**مچی** (mačáy) ښځ.م. بمبره، ډمبره، ډنداره، مچمچی، مچکی، موچی، غومبسه.

**مڅرغ** (macrág) نر.م. یو ډول وابښه دي.

**مڅرک** (macrák) نر.م. کربوړی، چمچورکه.

**مڅله** (macalá) ښځ.م. د نوک شاته غوښه، وری، مڅلی.

**مڅوڅک** (macūcák) نر.م. ۱) د هوسۍ بچی، کبلی؛ ۲) وړوکی حیوان، وړوکی شی.

**مڅوڅکی** (macūckáy) نر.م. یو ډول ژېړ رنګه وابښه دی چې په دوایي کې کارېږي.

**محاذ** (mahāz) نر.م. ۱) د جنګ ډګر، سنګر؛ ۲) ص.ق. مخامخ، مقابل.

**محاسب** (mahāsib) نر.م. حساب کوونکی، حساب و کتاب کوونکی، شمېرونکی.

**محاسبه** (mahāsibá) ښځ.م. حساب و کتاب کونه، حساب غوښتنه.

**محاسن** (mahāsín) ج.م. ښکلاوې، ښېګڼې، نېکی، فایدې، ځانګړنې.

**محاصره** (muhāsirá) ښځ.م. کلابند، له څلورو خواوو نه راتاوېدنه، چاپېره مخه بندونه.

**محافظ** (muhāfíz) نر.م. ساتندوی، پېره دار.

**محاکمه** (muhākimá) ښځ.م. د پرېکړې لپاره د یوه چا وړاندې کول.

**محال** (mahāl) ص.نر.م.ج. ناممکن، ګران.

**محاوره** (muhāwirá) ښځ.م. خبرې اترې.

**محب** (muhíb) ص.نر.م. مینه ناک، مینه لرونکی، دوست.

**محبت** (muhabát) نر.م. مینه، اخلاص، دوستي.

**محبس** (mahbás) نر.م. جېل، بندي خانه، زندان.

**محبوب** (mahbūb) نر.م. خوږ، ګران، دلدار.

**محبوبا** (mahbūbá) ښځ.م. معشوقه، محبوبه.

**محبوس** (mahbūs) ص.نر.م. بندي، قیدي، زنداني.

**محبوسول** (mahbūsawál) مت.ف. قیدي کول، بندي کول، قیدول، زنداني کول.

**محبوسېدل** (mahbūsedə́l) مص. ل. قید کېدل، بندېدل، قیدېدل.

**محتاج** (muhtā́j) ص. نر. م. ج. اړ، ضرورتمند، حاجتمند، غریب، پامته دار، بې وسه.

**محتاجول** (muhtājawə́l) مص. مت. اړ کول، اړ ویستل، حاجتمنول.

**محتاجېدل** (muhtājedə́l) مص. ل. اړ کېدل، حاجتمند کېدل.

**محتاط** (muhtā́t) ص. نر. م. احتیاط کوونکی.

**محترم** (muhtarám) ص. نر. م. عزتمند، عزتمن، معزز، لوی، د درناوي وړ.

**محتسب** (muhtasíb) نر. م. حساب اخیستونکی، محاسبه کوونکی، حاکم، کوتوال.

**محجوب** (mahjū́b) ص. نر. م. ۱) په پرده کې، پټ؛ ۲) شرمندوکی، حیاناک.

**محدود** (mahdū́d) ق. لږ، لږه اندازه، په ټاکلي حد کې بند، معلوم حد لرونکی، جوت ټک لرونکی.

**محراب** (mıhrā́b) نر. م. ۱) په جومات کې د امام په لمانځه د درېدو ځای؛ ۲) ډاټ؛ ۳) وسله، سیخ.

**محرر** (muharír) نر. م. لیکونکی، منشي، کاتب.

**محرک** (muharík) ص. نر. م. حرکت ورکوونکی، تحریک پیدا کوونکی.

**محرم**[1] (mahrám) ص. نر. م. ج. ۱) داسې خپلوان چې نکاح ورسره جایزه نه وي؛ ۲) واقف، خبردار؛ ۳) نر. م. احرام تړونکی.

**محرم**[2] (muharám) ص. نر. م. ج. ۱) حرام کړای شوی؛ ۲) نر. م. د قمري کال لومړی میاشت.

**محروم** (mahrū́m) ص. نر. م. ج. حرام کړای شوی، ناکام، بېنوا، بې برخې، مایوسه، نهیلی.

**محرومول** (mahrūmawə́l) مص. مت. مایوسه کول، ناکامول، نهیلی کول.

**محرومېدل** (mahrūmedə́l) مص. ل. نهیلی کېدل، بېنوا کېدل، مایوسه کېدل.

**محزون** (mahzū́n) ص. نر. م. زهیر، غمژن، خفه.

**محسن**[1] (mohsán) نر. م. احسانمند، چې نېکي ورسره شوې وي، چې ښه سلوک ورسره شوی وي، چې سخاوت پرې شوی وي.

**محسن**[2] (mohsín) نر. م. نېکي کوونکی، احسان کوونکی.

**محسوب** (mahsū́b) ص. نر. م. حساب کړای شوی، شمارل شول، شمېرل شوی.

**محسوبول** (mahsūbawə́l) مص. مت. گڼل، شمېرل، په حساب کې راوستل.

**محسوبېدل** (hsūbedə́l) مص. ل. گڼل کېدل، شمېرل کېدل، په حساب کې راتلل.

**محسود** (mahsū́d) ص. نر. م. چې کینه ورسره شوې وي، هغه څوک چې په زړه کې کینه ورته ساتل کېږي.

**محسوس** (mahsū́s) نر. م. حس شوی، هغه څیز چې د حواسو په وسیله معلوم کړای شي.

**محسوسول** (mahasūsawə́l) مص. مت. حسول، د حواسو په ذریعه معلومول.

**محسوسېدل** (mahsūsedə́l) مص. ل. محسوس کېدل، په وسیله معلومېدل.

**محشر** (mahšár) نر. م. قیامت، اخرت.

**محصل** (muhasíl) ص. نر. م. ۱) د پوهنتون د دورې زده کوونکی؛ ۲) وصولونکی، ټیکس ټولونکی، محصول اخیستونکی.

**محصن**[1] (muhsín) ص. نر. م. ۱) پرهېزگار، پاکباز؛ ۲) واده کړی.

**محصن** [۲] (muhsín) نر.م. سموونکی، کلابندوونکی، دېوال راتاوونکی.

**محصن** [۳] (muhsín) نر.م. ۱) کولپ، قلف، قفل؛ ۲) زنبېل.

**محصور** (mahsū́r) ص.نر.م.ج. کلابند، د دېوال دننه، گېر، ایسار.

**محصول** (mahsū́l) نر.م. چونگي، تېکس، خراج.

**محض** (máhz) ق. یوازې، صرف، فقط.

**محضر** (mahzár) نر.م. ۱) د حاضرېدو ځای؛ ۲) هغه کاغذ چې د قاضي مهر پرې لگېدلي وي.

**محفوظ** (mahfū́z) ص.نر.م. ۱) په امن، اماني، سلامت، ژغورلی؛ ۲) حفظ کړای شوی.

**محقق** (muhaqíq) نر.م. (ج. محققین) تحقیق کوونکی، څېړونکی، پلټونکی.

**محک** (mıhák) نر.م. هغه تور کاڼی چې د زرو کره کوټه پرې معلومولای شي، زرکاڼی.

**محکم** (mohkám) ص.نر.م. مضبوط، کلک، پوخ.

**محکمات** (mahkamā́t) ښځ.ج. د قرآن شریف هغه ایتونه چې مانا یې جوته او څرگنده وي.

**محکمتیا** (mahkamtyā́) ښځ.م. مضبوطوالی، استقامت، مضبوطي، محکموالی.

**محکمه** (mahmamá) ښځ.م. ۱) د حکم صادرولو ځای، اداره؛ ۲) عدالت.

**محکوم** (mahkū́m) ص.نر.م.ج. ښکېل شوی، ترحکم لاندې، ماتحت، تابع، تر لاس لاندې.

**محل** (mahál) نر.م. ۱) ماڼۍ، کور، لوی ځای؛ ۲) وخت، موقع، مال.

**محلت** (mahlát) نر.م. مالت، د کلي یوه برخه، چم، گاونډ، کندی، محله.

**محلسرا** (mahalsarā́) نر.م. د پاچا د ښځو هستوگنځای.

**محلوج** (mahlū́j) نر.ج. ورېښلي شوي مالوچ.

**محلول** (mahlū́l) ص.نر.م. حل شوی، هغه څیز چې په اوبو کې حل شي، اوبه کړای شوی.

**محله** (mahalá) ښځ.م. وگ. محلت.

**محله دار** (mahaladā́r) نر.م. ۱) په محلت کې اوسېدونکی؛ ۲) د محلې مشر.

**محمل** (mahmál) نر.م. یو ډول ډولۍ چې د اوښ په شا وړل کېږي، کجاوه، کیجاوه.

**محنت** (mıhnát) نر.م. خواري، تکلیف، مزدوري.

**محور** (mıhwár) نر.م. مرکز.

**محوه** (mahwá) ص.نر.م. ۱) وران، ړنګ، نابود؛ ۲) فکرمند.

**محویت** (mahwyát) نر.م. د محوه کېدو حالت، په خیال کې ورک، په تصور کې ډوب.

**مخ** (max) نر.م. ۱) څېره، بشره، شکل، موشاده؛ ۲) استر؛ ۳) لحاظ، خاطر؛ ٤) وړاندې؛ ۵) د توري خوله.

**مخاداینه** (maxādā́yaná) ښځ.م. مخنۍ اداینه، وړاندې ورکونه، پېشکي.

**مخارتی** (máxartay) نر.م. مخارتونی، وړانگارتونی، پراجیکټر.

**مخاسته** (maxā́sta) ښځ.م. د قدم نښه، د پله نښه، چاپ، خاپ، خاپی، منډ.

**مخاصم** (maxāsím) ص.نر.م. دښمن، مخالف.

**مخاصمت** (maxasımát) نر.م. دښمني، میرڅي، مخالفت، تربگني، بغض، کینه.

**مخاطب** (maxātáb) ص.نر.م. فاعل یا ویونکي ته مخامخ.

**مخاطبه** (maxātıbá) ښځ.م. په خپله منځ کې خبرې کول، یو بل ته مخامخ خبرې کول.

**مخالفت** (maxālıfát) نر.م. دښمني، تربگني.

**مخامخ** (maxāmáx) ص. ق. نب. مخ په مخ.
**مخامختیا** (maxā́maxtyā́) ښځ.م. مخاوی، مخوالی، مخامخېدل، روبارویي.
**مخامخول** (maxā́maxawə́l) مص. مت. مخامخ کول، مقابل کول.
**مخامخی** (maxā́maxay) ق. مخامختیا، بدوالی، تقابل.
**مخامخېدل** (maxā́maxedə́l) مص. ل. مخامخ کېدل، مقابل کېدل.
**مخبر** (moxbír) نر.م. خبر ورکوونکی، جاسوس.
**مخبر** (moxbar) مف. نر.م. خبر شوی، اګاه شوی.
**مخبنا** (máxbınā) ښځ.م. روبنا، روسازی.
**مخبېلګه** (máxbelgá) ښځ.م. مخنۍ بېلګه، قبلي نمونه.
**مخ پټی** (máxpaṭay) نر.م. پرونی، حجاب، برقعه.
**مخ په کوزه** (máxpakūzá) ق. مخ پر خوړ، مخ پر کښته، مخ پر لاندې.
**مخ په مخ** (máxpamáx) ق. مخامخ، نبغ په نبغه.
**مخ پروړاندې** (máxpar wṛāndé) ق. مختلونکی، مخکښ، پېشاپېش.
**مختار** (muxtā́r) ص. نر.م. اختیارمن، خپلواک، واکمن، مجاز، وکیل، ازاد.
**مختارول** (muxtā́rawə́l) مص. مت. اختیار ورکول، خپلواکول، ازادول.
**مختارېدل** (muxtā́redə́l) مص. ل. اختیار میندل، ازادېدل.
**مختاړی** (maxtā́ṛay) نر.م. مخکې، وړاندې، د وروستاړي ضد، سابقه.
**مختالوییز** (maxtālūyiz) نر.م. په مخنیو اوریو ادا کېدونکی اواز.
**مختص** (maxtás) ص. نر.م. خاص کړای شوی.
**مختصر** (maxtasár) ص. نر.م. خلاصه کړای شوی، خلاصه، لنډ، لږ، ورکوټی.
**مختصراً** (maxtasarán) ق. په لنډو، لنډه دا چې، په اختصار سره، خلاصه دا چې.
**مختګ** (maxtág) نر.م. ترقي، وړاندې تلنه.
**مختلف** (moxtalíf) ص. نر.م. ج. چې یو ډول نه وي، جلا، مخالف، بېل بېل، رنګ په رنګ.
**مختلونی** (maxtlūnay) ص. نر.م. مخکې تلونکی پرمختګ کوونکی.
**مخ تورکېدل** (maxtorkedə́l) مص. ل. شرمنده کېدل، شرمېدل.
**مختورن** (maxtorán) ص. نر.م. شرمنده، ذلیل.
**مختوري** (maxtorí) ښځ.م. بې عزتي، شرمنده ګي.
**مختوری** (maxtóray) ص. نر.م. رټل شوی، ملامته، بې عزته، دروغجن.
**مختیاری** (máxtayā́ray) نر.م. مخکنۍ تیاری، مخکې تیاری، قبلي آماده ګي.
**مخڅپونی** (máxcapoṇay) نر.م. مخوچونی، مخپاک، د مخ دسمال.
**مخدوم** (maxdū́m) ص. نر.م. خدمت کړای شوی، بزرګ، عزتمند، بادار، اقا.
**مخرانی** (maxrāṇáy) ښځ.ج. ۱) و ګ. مرخنی. ۲) دوه مخی.
**مخرب**[۱] (moxarráb) ص. نر.م. ج. ویجاړ شوی، وران شوی.
**مخرب**[۲] (moxaríb) ص. نر.م. ویجاړوونکی، ورانوونکی، خرابوونکی، تخریبکار.
**مخرج** (maxráj) نر.م. د وتو ځای، سرچینه، منبع.
**مخرړی** (maxraṛáy) ښځ.م.ج. و ګ. مخرنی.
**مخرنی** (maxraṇáy) ښځ.ج. و ګ. مرخنی.

**مخروط** (maxrū́t) ص. نر.م. ۱) تراشلی شوی، توږلی؛ ۲) یو هندسي شکل دی.

**مخروني** (maxrūṇí) ښځ.م. سوبه؛ کامیابي، عزت.

**مخرونۍ** (maxrūṇáy) ښځ.م. کامرانه، عزتمنده، نېکمرغه.

**مخروی** (maxroy) نر.م. ځان ښودنه، ریا.

**مخریزي** (maxrizí) نر.م.ج. ماغزه، دماغ.

**مخزن** (maxzán) نر.م. دخزانې ځای، دجمع کولو ځای.

**مخزېږد** (maxzéẓd) نر.م. تر میلاد دمخه، قبل المیلاد.

**مخزېږدي** (maxzeẓdí) ق. تر زېږد د مخکې مهال اړوند.

**مخژبیز** (maxžábiz) نر.م. د ژبې پر مخنۍ برخې ادا کېدونکی.

**مخسور** (maxsū́r) نر.م. مخسوری، سرلوړی، مخرونی، ښاځمن.

**مخسوري** (maxsūri) نر.م. سرلوړي، ښاځمني، مخروني.

**مخصوص** (maxsū́s) ص.نر.م. ځانګړی، خاص کړای شوی، غوره کړای شوی، نامزد شوی.

**مخصوصاً** (maxsūsán) ق. په ځانګړي توګه.

**مخغاښيز** (maxǧā́ṣiz) نر.م. هغه اوازچې پاسنیو غاښونو ته د ژبې د څوکې په ورجګېدو سره ادا کېږي.

**مخفف** (muxafáf) ص.نر.م. تخفیف کړایَ شوی، کم شوی، لنډ شوی.

**مخفي** (maxfī́) ص. نب. پټ، ناڅرګند.

**مخ کاته** (maxkātá) نر.م. د ناوې د مخ جوتول او د کتونکو له لوري ناوې ته پیسې ورکول.

**مخکتنه** (maxkatəná) ښځ.م. مخرونی، د چا پر کتاب باندې کتنه یا کره کتنه چې لومړی ځل لپاره د یوې غونډې په ترڅ کې ترسره کېږي.

**مخکړ** (maxkáṛ) نر.م. کړوال، مختاړی، فعلي مختاړی.

**مخکښ** (maxkáṣ) ص. نر.م. په مخکې تلونکی، د څارویو سرکښ، مشر، قاید.

**مخکښې** (maxkṣé) ق. پخوا، مخکې.

**مخکوټه** (maxkóṭá) ښځ.م. مخنۍ کوټه، مخخونه.

**مخکې** (maxké) ق. ۱) مخکښې؛ ۲) د یوې غونډۍ هوار، ښوی او مایل لوری.

**مخکینی** (maxkínay) نر.م. د تولو په سر کې، وړاندینی، لومړنی.

**مخګڼه** (maxgaṇá) ښځ.م. د مخ شمېره، د مخ ګڼه.

**مخګواښ** (maxgwā́ṣ) نر.م. مخنۍ ګواښ، مخکنی ګواښ، مخکېنی اخطار.

**مخلص** (muxlís) ص. نر.م. سوچه، ریښتینی، خیرخواه، اخلاصمند، صادق.

**مخلوط** (maxlū́t) ص. نر.م. ګډ، یوځای، شریک.

**مخلوق** (maxlū́q) نر.ج. ۱) ولس، نړۍ، وګړي؛ ۲) ص. پیدا کړی شوي.

**مخلید** (maxlī́d) نر.م. پیش منظر، وړاندې منظره.

**مخمس** (moxamás) نر.م. ۱) پنځه ضلعه ییز شکل؛ ۲) پنځه مصرعه ییز نظم.

**مخمسه** (maxmasá) ښځ.م. ۱) جنګ، جګړه؛ ۲) زړه نازړه.

**مخمل** (maxmál) نر.م. نرم رخت، بخمل.

**مخمور** (maxmū́r) ص. نر.م.ج. نېشه، مست.

**مخنث** (muxanás) نر.م. نرګت، نرښځی.

مخنی (maxanáy) نر.م. مخکینی، پخوانی، لومړنی.
مخنی خبرې (maxanáyxabáre) ښځ.ج. سریزه، سری.
مخنیوی (maxníway) نر.م. مخ پټونه، مخ نیونه.
مخنیوي وړ (maxníwiwáṛ) ص.نب. د مخنیوي وړ، د مخنیوي قابل.
مخ وچونی (maxwačūnay) نر.م. رومال.
مخور (maxawár) نر.م. ۱) وګ. مخوری؛ ۲) رهبار.
مخوري (maxawarí) نر.م. لحاظ، عزت، خاطر، اعتبار.
مخه (maxá) ښځ.م. مخنی لوری.
مخه ښه (maxáṣá) ښځ.م. خدای پاماني.
مخې (maxáy) ښځ.م. ۱) هغه پېغله چې د بلې پېغلې په بدل کې ورکړای شوې وي؛ ۲) کیسی، بدلګري، معما، دوره.
مخی (maxáy) نر.م. سیال، مقابل، مساوي.
مخې (maxe) نر.م. ۱) جوړه، پله، ځواب؛ ۲) مخکې؛ ۳) مثال.
مخي توب (maxitób) نر.م. مخي والی، برابرتیا، مقابلوالی او مساویوالی.
مخیر (moxayír) ص. نر.م. ۱) خیر رسوونکی، فیاض، سخي؛ ۲) د اختیار خاوند.
مخینه وال (maxinawā́l) نر.م. مخینه لرونکی، سابقه لرونکی.
مخیونی (maxyūnay) نر.م. پرمختلونی، مترقي.
مد (mad) نر.م ۱) خمار، نېشه؛ ۲) رسم، رواج، دود.
مداح (madā́h) ص. نر.م. ثنا ویونکی، صفت کوونکی.
مداخلت (mudāxılát) نر.م. ننوتنه، لاس وهنه، مداخله.

مدار (madā́r) نر.م ۱) زغم، صبر؛ ۲) احترام، ناز، مهرباني؛ ۳) د تاوېدو ځای، ګردش؛ ٤) زهره؛ ٥) جادو؛ ٦) ښځ.م. ملاحظه، قدر، خاطر.
مداري (madārí) نر.م. کوډګر، جادوکوونکی، شعبده باز.
مدام (mudā́m) ق. تل، تل تر تله، تول عمر.
مدبر (mudabír) ص. نر.م.ج. هوښیار، ځیرک، تدبیر والا، تدبیرنیوونکی.
مدت (modát) نر.م. موده، ټاکلی وخت.
مدح (madhá) ښځ.م. هغه نظم چې د چا صفت په کې شوی وي، ستاینه.
مدحیه (madhıyá) ص. ښځ.م. د ستاینې، مدحې ته منسوب، د ستاینې وړ.
مدد (madád) نر.م. امداد، مرسته.
مددګار (madadgā́r) نر.م. مرسته کوونکی، حمایت کوونکی، ملاتړ کوونکی.
مدرس (mudarís) نر.م. تدریس کوونکی، استاذ، ښوونکی.
مدرسه (madrasá) ښځ.م. (ج. مدرسې) د درس او تدریس ځای، ښوونځی، مکتب.
مدعا (modaṣā́) ښځ.م. موخه، مقصد، غوښتنه.
مدعاعلیه (mudaṣāṣalayhí) نر.م. په چا چې دعوا شوې وي.
مدعي (mudaṣí) نر.م. دعوا کوونکی یا لرونکی.
مدغم (mudğám) ص.نر.م. سره یوځای، ګډ، ننوتی، شامل.
مدفن (madfán) نر.م. هدیره، مړستون، زیارت.
مدفون (madfū́n) ص. نر.م. ښخ شوی.
مدک (madák) نر.م. هغه تریاک چې په چلم کې څښل کېږي.
مدکی (madakáy) ص.نر.م. د مدکو نشه کوونکی.

**مدلل** (mudalál) ص. نر.م.ج. په دلیل سره ثابت کړای شوی.

**مدو جزر** (madūjázar) نر.م. د سیوړمي له امله په اوبو کې پیدا شوي موجونه.

**مدوګی** (madogáy) نر.م. د لرګي اوږده چوکه چې په سر کې یې دوه غابښي سیخ لګېدلي وي.

**مدنیت** (madanyát) نر.م. پرمختګ، تهذیب، تمدن.

**مدون**[1] (mudawán) ص. نر.م.ج. تدوین شوی، راټول شوی، جمع کړای شوی.

**مدون**[2] (modawín) فا. نر.م. ټولوونکی، ترتیبوونکی.

**مدهوش** (madhūš) ص. نر.م. چې د نېشې له امله له هوښه وتلی وي، بېخوده، حیران.

**مدیر** (mudír) نر.م. ۱) چلوونکی؛ ۲) د دفتر مشر.

**مذاق** (mazā́q) نر.م. ۱) ټوکې، ټکالې، مسخرې؛ ۲) خوند، لذت، ذایقه.

**مذاقیه** (mazāqyá) ص. د خندا وړ، په ټوکې اړوند.

**مذاکره** (muzākırá) ښځ.م. په خپل منځ کې بحث او مباحثه کول، خبرې اترې سره کول.

**مذاهب** (mazāhíb) نر.ج. د مذهب جمع، طریقې.

**مذبح** (mazbáh) نر.م. وژنځای، د حلالولو ځای، مسلخ.

**مذبذب** (muzabzáb) نر.م. دوه زړی، استقلال نه لرونکی، مشتبه، ګډوډ، په شک کې.

**مذبوح** (mazbū́h) ص. ښځ.م. حلال شوی، ذبح کړای شوی.

**مذکر** (mozakár) ص. نر.م. ۱) نر، سړی؛ ۲) په ګرامر کې هغه اسم چې نر ګڼل کېږي.

**مذکور** (mazkū́r) ص. نر.م.ج. ویلی شوی، ذکر شوی، بیان کړای شوی.

**مذمت** (muzamát) نر.م. غندنه، ترټنه.

**مذموم** (mazmū́m) ص. نر.م. بد، خراب، قبیح.

**مذهب** (mazháb) نر.م. عقیده، دین، طریقه.

**مر** (mar) ص. نر.م. مرګ، مړینه.

**مراثي** (marāsí) نر.م. ډم، سازنده.

**مراجعت** (murājısát) نر.م. راستنېدنه، پستنه کېدنه، رجوع.

**مراحل** (marāhíl) نر.ج. پړاوونه، د مرحلې جمع.

**مراد** (murā́d) نر.م. مقصد، مطلب، مدعا، هدف.

**مراسله** (murāsılá) ښځ.م. لیک، خط.

**مراسم** (marāsím) نر.ج. دودونه، رسمونه. له خپلو سره تګ راتګ، لیدنه کتنه.

**مرافعه** (murāfısá) ښځ.م. دویمه محکمه عوښتنه، دویم نظر.

**مراق** (marā́q) نر.م. دماغي ناروغي، سودایي.

**مراقبه** (murāqıbá) ښځ.م. په ګرېوان کې سر کښېنته کونه، غور، ځان سره ژور فکر، تصور.

**مرام** (murā́m) نر.م. مقصد، مطلب، مراد، هیله.

**مرانده** (mrā́nda) ښځ.م. ۱) د خیمې یا کېږدۍ نرۍ پړی؛ ۲) د زره رګونه.

**مراوده** (marāwıdá) ښځ.م. تړون، سلاکېدل، جوړجاړی، خپلوي، اړه، راشه درشه.

**مربا** (murabā́) ښځ.م. د مېوې هغه اوبه چې بوره کې پخې شوې وي.

**مربع** (murabás) ښځ.م. هغه هندسي شکل چې څلور واړه ضلعې یې برابرې وي.

**مربوط** (marbū́t) نر.م.ج. اړوند، تړون لرونکی، تړلی، متعلق.

**مربي** (murabí) نر.م. سرپرست، پالونکی، مشر.

**مرتب** (muratáb) ص. نر.م. ق. ۱) ترتیب کړای شوی، سنجولی؛ ۲) فا. نر.م. ترتیبوونکی.

مرتبان (martabān) نر.م. هغه لوښي چې اچار، مربا، چکني او نور پکې ساتل کېږي.

مرتبه (martabá) ښځ.م. پوړۍ، درجه، رتبه، کمال.

مرتجع (murtajíʻ) ص.نب. بېرته ګرځېدونکی، رجعتي، رجعت پرست.

مرتد (murtád) ص.نر.م.ج. له اسلامه بېرته ګرځېدلی، ګمراه، کافر.

مرتکب (murtakíb) فا.ص.نر.م. کوونکی، عمل کوونکی، ارتکاب کوونکی.

مرثیه (marsıyá) ښځ.م. ویرنه، هغه نظم چې د مړو په ویر، ماتم، غم او ستاینه کې ویل شوی وي.

مرجان (marján) نر.م. یو قیمتي سره ډبره ده.

مرجوڼا (marjūṇá) نر.م. لامبوزن، غواص، مرجېوڼ، د مرغلرو پلټونکی.

مرجېوڼ (marjewáṇ) نر.م. لامبوزن.

مرچ (mrač) نر.م ۱) توري ترخې دانې دي چې په خوړو کې کارېږي. ۲) مرچکی.

مرچړی (marčaṛáy) نر.م. د لوخې بوټي، مرچونی.

مرچک (marčák) نر.م.ج. ۱) وګ. اورمېږ؛ ۲) مرچ.

مرچکی (marčakáy) ص.نب.نر.م. ۱) شین او سور مرچ؛ ۲) تُوند مزاجه سړی.

مرچنډوخ (marčanḍóx) نر.م. چنډخ، ښینګاښ.

مرچوړی (marčūṛáy) نر.م. وګ. مرچړی.

مرڅوړی (marcūṛáy) نر.م. مزری، هغه بوټی چې بوټي ورڅخه جوړوي.

مرڅنک (marcınák) نر.م ۱) د اور نوسی؛ ۲) د وینښتو ایستلو آله چې ښځې یې استعمالوي.

مرحبا (marhabá) د تحسین کلیمه: ۱) شاباس، افرین؛ ۲) داد ګیرنه، عدل، په خیر راغلې.

مرحله (marhalá) ښځ.م. پړاو، منزل.

مرحمت (marhamát) نر.م. مهرباني، پېرزوینه.

مرحوم (marhūm) ص.نر.م. مړ شوی.

مرخص (muraxás) ص.نر.م. رخصت شوی.

مرخنۍ (marxaṇáy) نر.م. مرخانی، د بېرو په شېر یوه مېوه ده، عناب، مخرانی، مخرونی.

مرد (mard) نر.م. ۱) د انګازې ځای، هغه ځای چې اواز انعکاس په کې کوي؛ ۲) نر، سړی.

مردار (murdár) ص.نر.م. چټل، حرام، ناروا، پلیت.

مردارول (murdārawə́l) مص.مت ۱) مړ کول؛ ۲) پلیت کول.

مردار مړی (murdārmáṛay) نر.م. پلیت.

مردار هډی (murdārháḍay) ص.نر.م. هغه څوک چې په حرامو لوی شوی وي؛ ۲) خر.

مرداري (murdári) ښځ.م. ناپاکي، پلیتي.

مرداري بڼې (murdārebáṇe) ښځ.ج. د مرغانو د بچو اولنۍ بڼې یا پخې.

مردارېدل (murdāredə́l) مص.ل. چټلېدل، مړه کېدل، پلیتېدل، خوسا کېدل.

مردان (mardán) نر.ج. د مرد جمع، سړي، نارینه.

مردک (mardák) نر.م. د ټوپک او توپ ګولۍ.

مردکی (mardakáy) نر.م. ۱) د چار مغز په شېر ګرد ښوی د لوبې کاڼی؛ ۲) ګولۍ، مرمۍ.

مردکۍ (mardakə́y) ښځ.م. وړه مردکه.

مردمک (mardumák) نر.م. دستګې کسی.

مردنګ (mardáng) نر.م. یو مخیز ډولکی، طبله.

مردود (mardúd) نر.م. رټلی، خوار، ذلیل.

مردي (mardí) ښځ.م. ۱) نرتوب؛ ۲) بتېږه.

مرړی (marṛáy) نر.م. یو ډول سابه دي.

مرړۍ (marṛə́y) ښځ.م. د ټوپک د پاکولو مزی.

مرز (marz) نر.م. ۱) د کرلو ور ځمکه؛ ۲) ښځ.م. یو ډول بوټی دی چې بند بند ښخ لري.

مرزا (mırzā́) ص. نر.م. ۱) اميرزاده؛ ۲) د مغلو لقب؛ ۳) ليکوونکی، جرېبونکی، منشي.

مرست (mrást) نر.م. ۱) مرسته، کومک؛ ۲) لتون، تلاش؛ ۳) باب، اړه، پاره.

مرستاوړون (mrástāwṛū́n) نر.م. هغه کړاوړون (فعلي صرف) چې د مرستيالکړ په مرسته تر سره کېږي.

مرستليکی (mrástlikay) نر.م. مرستيال کتاب، درسي مرستيال، درسي ممد.

مرستمهال (mrástmahā́l) نر.م. د يوه مرستيال توک په مرسته منځته راغلي فعلي زمانه.

مرستندوی (mrástandoy) نر.م. مرستی، مرستيال، مرسته کوونکی.

مرستون (mrástū́n) نر.م. د مرستې ځای.

مرستونی (mrástū́nay) نر.م. مرستيال، معاون، کومک کوونکی.

مرسته (mrásta) ښځ.م. کمک، لاس نيوی.

مرستی (mrástay) نر.م. مرستيال، مرستندوی، مرسته کوونکی.

مرستيال (márstyā́l) نر.م. مرسته کوونکی، ملاتړی، حمايت کوونکی، نايب.

مرستيال سيند (mrástyā́lsınd) نر.م. د سيند مرستيال، کوچنی ګډېدونکی سيند.

مرستيالکړ (mrástyā́lkaṛ) نر.م. مرستيال فعل، کومکي فعل.

مرستين (mrástin) نر.م. د وزير مرستيال، معين، د وزارت معين.

مرسل (mursál) فا. نر.م ۱) لېږونکی، لېږل شوی ۲) نر.م. د ګلابو يو ډول.

مرسل اليه (mursalālayhí) نر.م. اخيستونکی.

مرشد (muršíd) نر.م. لارښود، پير، ارشاد کوونکی.

مرصع (murasás) ص. نر.م. ۱) سينګار شوی، په غميو ښکلی کړای شوی؛ ۲) قيمتي، ښايسته.

مرض (maráz) نر.م. رنځ. ناروغتيا، بيماري.

مرضي[1] (marzí) ښځ.م. خوښې، خوښه، رضا.

مرضي[2] (marazí) ص. نب. ۱) ناروغ، بيماري لرونکی؛ ۲) کوني، موېستي؛ ۳) بچه باز.

مرطوب (martū́b) ص. نر.م. ج. نمجن، لوند.

مرطوبيت (martūbyát) نر.م. لوندوالی، نمجنتيا.

مرعوب (marsū́b) ص. نر.م. ډارېدلی، وېرېدلی، وېرول شوی.

مرغ (mərğ) نر.م. بخت، طالع، فال. مبارک شه!.

مرغټانه (marğaṭāna) ښځ.م. ګونګټ، قنغوزک.

مرغچی (marğačáy) نر.م. هغه سړی چې پټيو نه مرغۍ شړي، د پټيو ساتونکی.

مرغچيچه (murğacıča) ښځ.م. کنجکه، خرمهره.

مرغری (marğaráy) ښځ.م. غوټه، لامبو.

مرغړوه (marğaṛawá) ښځ.م. يوه غرنۍ ونه ده.

مرغړی (marğaṛáy) نر.م. په بدن کې د غوښې هغه ګيټکۍ چې لاړې پيدا کوي، پاړسوب، ستغ.

مرغزار (marğuzā́r) نر.م. چمن، ورشو، روغه.

مرغ زرين (murğzarín) نر.م. لېټ، لوېټ، لوهټ.

مرغسته (marğastá) ښځ.م. نرۍ وربخ.

مرغسن (marğasán) ښځ.م. د وربخې ورې وړې توټې چې په آسمان کې خپرې وي.

مرغک (marğák) نر.م ۱) مرۍ، چنغښک، ګوړګوتو؛ ۲) د ژرندې د څرخ په لانديني برخه کې اوسپنه چې څرخ پرې ګرځي.

مرغکی (marğakáy) ښځ.م. نرمه ګياه ده چې د فرش پر ځای يې په جوماتونو کې اچوي.

مرغلره (marğalára) ښځ.م. لال، يو ډول قيمتي کاڼی، ملغلره.

مرغلین (margalin) ص. نر. م. ج. ۱) د مرغلرې اړوند، مرغل مزی، د هار لړ؛ ۲) ځوتاو کړي تارونه.
مرغوب (marğūb) ص. نر. م. زړه ته نږدې، ښکلی.
مرغوټی (marğūṭáy) نر. م. د مرې یوه ناروغي، مرغړی.
مرغوڅی (marğūcáy) نر. م. مردکی، مرغوړی.
مرغوړنه (marğūṛana) ښځ. م. غرور، لویي، کبر.
مرغوړی (marğūṛáy) نر. ج ۱) مردکی، بلوري، غونډاري، مرغوڅی؛ ۲) لویي، کبر، غرور.
مرغوزی (marğūzay) نر. م. د الوتونکو بچی، بچونی.
مرغول (marğū́l) نر. م. ۱) گران، مشکل، سخت، کوږ؛ ۲) مغرور، متکبر.
مرغولی (marğoláy) نر. م. برغولی، دهلکانو یوه لوبه.
مرغومڅیه (marğūmcaya) نر. م. ۱) مرغومی، ورغومی، وری؛ ۲) سپرلی.
مرغومکی (marğūmkáy) نر. م. ۱) مرغومی؛ ۲) د ماشومانو د یوې لوبې نوم.
مرغومی (marğū́may) نر. م. ۱) ورغومی، د چیلۍ بچی، د وزې بچی؛ ۲) د لمر د یوې لمریز کال لسمه میاشت.
مرغه[1] (marğá) نر. م. الوتونکی.
مرغه[2] (marğá) ښځ. م. شینکی، شنه واښه، کبل.
مرغه چنه (marğačána) ښځ. م. کبل لرونکې او چمني ځمکه.
مرغه چیچ (marğačíč) نر. م. مرغه چیچه، کنجکه.
مرغۍ پاپی (marğaypāpay) ښځ. ج. د سابو لپاره یو ډول خپله رازرغونېدونکی بوټی چې پاڼې یې د مرغیو پښو ته ورته دي.

مرغۍ پل (marğaypál) نر. م. د مرغۍ د پنجو په څېر گل.
مرغیړی (marğíṛay) ښځ. م. راشپېڼ، خووی.
مرغیړ (marğíṛ) نر. م. هغه بوټی چې د سیند په غاړو او شگلنو ځمکو کې شین کېږي.
مرغېړی (marğéṛay) ښځ. م. راشپېل، خووی.
مرغېچی (marğečáy) نر. م. د کرهنې ساتونکی.
مرغېڼا (marğeṇā́) ص. نر. م. ۱) نامرد، ایجړا، هیجړا؛ ۲) تمبل، بېکار.
مرغۍ ډوډۍ (marğaydoḍáy) ښځ. م. پنېرک، د مرغۍ تیکلی، د مرغۍ مځله، سابه.
مرغۍ (marğáy) ښځ. م. چنچنه، کوچنی الوتونکی.
مرغۍ څکی (marğaycakay) ښځ. م. پنېرک، سابه، پنډېرک، کارگه تکی، مرغۍ ډوډۍ.
مرغۍ مرغۍ (marğáymarğáy) ق. کیرې بیرې، خوبولی، ویده.
مرفه (murafáh) ص. نب. آرام، سوکاله، آسوده.
مرقد (marqád) نر. م. قبر، مزار، زیارت.
مرکاوو (markāwū́) نر. م. وگ. مرکچي.
مرکب[1] (markáb) نر. م. د سورلی خر.
مرکب[2] (murakáb) ص. نر. م. ترکیب شوی، ملاو شوی، گډوډ.
مرکچي (marakčí) ص. نر. م. مرکاوو، مرکه چي، مرکوال، مرکه کوونکی، د جرگو مشر.
مرکز (markáz) نر. م. د دایرې د منځ نقطه، منځ.
مرکنډ (markánḍ) نر. م. مرغټ، مرۍ، ورمېږ.
مرکنډی (markanḍáy) ښځ. م. ۱) مرۍ، غاړه، څټ؛ ۲) د غوږ شاته گیټی؛ ۳) مالکنډی.
مرکوز (markū́z) ص. نر. م. ۱) مضبوط کړای شوی؛ ۲) منظور کړی شوی؛ ۳) تاو راتاو، ښخ.

**مرکونډی** (markūnḍáy) ښځ. م. و گ. مارکونډی؛ ص. جګړه ماره ښځه، جګړنه.

**مرکوهلی** (marakūhlay) نر. م. د کوم ښکاري مرغه نوم دی.

**مرکه** (maraká) ښځ. م. مجلس، شورا، جرګه.

**مرکۍ** (marakáy) ښځ. م. د ملغلرې بچی، دریچه، دیرڅه، دریڅه.

**مرګ** (marg) نر. م. مړه کېدل، د ژوند پای، مړینه.

**مرګانی** (margānáy) ص. نر. م. د مرګ سره متعلق، مرګ ته نیږدې، د مرګ، مرګونی.

**مرګانۍ** (margānáy) ښځ. م. یو ډول لوبه ده.

**مرګبو** (margbo) ښځ. م. و ګ. مرګو.

**مرګچپانی** (margcapāṇay) نر. م. مرګچپنی، مرګچپې، مرګونی، مړچپن.

**مرګز** (margaẓ) نر. م. یو ډول ناروغي ده.

**مرګ ژواک** (margžwák) نر. م. مړي ژوندی، ښه بده، تولنیزې اړیکې.

**مرګ ژوبله** (margžóbla) ښځ. م. جنګ جګړه، داسې جګړه چې په کې مړه او ټپیان پکې شي.

**مرګ کوونکی** (margkawūnkay) فا. نر. م. قاتل، قتل کوونکی، وژونکی.

**مرګو** (margó) نر. م. طاعون، وبايي ناروغي.

**مرګ وژوند** (margožwand) نر. م. مرګ و ژواک، ژوند او مړینه.

**مرګونی** (margūnay) ص. نر. م. مرګ ته نیږدې، مرګانی، مړژواندی.

**مرګونۍ** (margūṇay) نر. م. د پښې کوره، کوتاړی.

**مرګي** (margí) نر. ج. مېرګي، دماغي ناروغي.

**مرله** (marlá) ښځ. م. (ج. مرلې) د کانال شلمه برخه.

**مرمت** (maramát) نر. م. ترمیم کول.

**مرمر** (marmár) نر. م. یو ډول کانی، سنګ مرمر.

**مرمرپزی** (marmarpaẓay) نر. م. مرمري بدن، سپین مخی، ښکلی.

**مرمرتوږاند** (marmartoẓānd) نر. م. مرمر توږوونکی؛ مرمر تراش.

**مرمروزمه** (marmarwazma) ښځ. م. لکه مرمر، مرمر غونډې، د مرمر په څېر.

**مرمره** (murmurá) ښځ. م. له وریجو نه جوړې شوې پولۍ چې ګوړه په کې ګډه کړې وي، مرنډه.

**مرمري** (marmarí) ص. نب. په خوږو کې اچول شوې چواره.

**مرمرین** (marmarín) ص. نر. م. د مرمرو په رنګ سپین.

**مرمنډی** (marmanḍáy) نر. م. مړوند.

**مرموز** (marmū́z) ص. نر. م. پټ، مخفي، پوشیده، رازساتونکی.

**مرمۍ** (marmáy) ښځ. م. ج. د ټوپک ګولۍ.

**مرمیله** (marmíla) ښځ. م. ورمولی.

**مرنجان** (maranjā́n) نر. م. یو ازغن بوټی دی.

**مرند** (maránd) نر. م. د اوبو ورخ.

**مرنده** (marandá) ښځ. م. دعواګیره ښځه.

**مرنډ** (maránḍ) ښځ. م. د لوخوبار، د لوخو وځکی.

**مرنف** (marnáf) ښځ. م. سیلی، لښپاک، ګرد کانی.

**مرنۍ** (marṇáy) ښځ. م. ۱) ورخاړی، یو ډول سابه، خرفه؛ ۲) یو ډول بوټی دی چې سور ګل کوي؛ ۳) کباړی، غدکه، ردا، دلق.

**مرواري** (marwā́ri) ص. نر. م. د مرواري په څېر سپین.

**مروارید** (marwā́rid) نر. م. ګوهر، ملغلره، دُر.

**مرواله** (marwālá) ښځ. م. یو ډول ونه، بان، شوع، د خرولې له کورنۍ څخه یوه ونه.

**مروبا** (marobā́) ص. ښځ. م. مرکب.

**مروت**[۱] (marwát) نــر.م. بهـادري، مـېـړانه؛ ۲)احسان، مينه، انسانيت.

**مروت**[۲] (marwát) نر.م. ۱)خندق؛ ۲)لحاظ، اعتبار، خاطر.

**مروج** (murawáj) ص.نر.م.ج. رواج شوى، رايج.

**مرور** (marawár) ص. نر.م. خفه، ناراض، زړه بدى، گيله من، زړه تورى.

**مرورتوب** (marawartób) نر.م. خفگان، مرورتيا.

**مرورول** (marawarawál) مص. مت. خفه كول، ناراضه كول.

**مرورېدل** (marawaredál) مص. ل. خفه كېدل، ناراضه كېدل.

**مرورۍ** (marawaráy) ښځ.م. يـو ډول بوټى دى چې سپين گل كوي او د گل منځ يې ژېړ وي.

**مرورى** (marwaráy) نر.م. د بابوڼي بوټى.

**مروړ** (mroṛ) نر.م. ۱) چونډۍ، سكونډۍ، منبنه؛ ۲) په خېټه كې د درد پيدا كېدل.

**مروړل** (mroṛál) مص. مت. منبل، تاوول.

**مروړلي تروړلي** (mroṛálay troṛálay) ق. په زور اخيستى، په جبر اخيستى.

**مروړه** (mroṛá) ښځ.م. مـروۍ، خـراړه، د تـوپک د نس د پاكولو آله.

**مروړى** (mroṛáy) نر.م. ۱) پېچش، نس خـوږي؛ ۲)وړوكى غونډ شى.

**مرونډې** (mrondé) ښځ.م ۱)نيني؛ ۲)و گ. مرمره.

**مرونډى** (mrondáy) نر.م. ولې تـه ورتـه هغـه بوټى چې د سيلاب د مخنيوي لپاره د خوړونو پر غاړو كښېنول كېږي، مرمونډى.

**مرهم** (marhám) نر.م. ملهم، پهه، پټۍ.

**مرهوتي** (marhūṭi) ښځ.م. د حشراتو د چيچلو له امله په بدن باندې د دانو پيدا كېدل، لړه مى.

**مرهون** (marhūn) نـر.م. احسانمند، گانه شوى، گرو شوى.

**مرۍ** (maráy) ښځ.م. ۱)گوړگوړو، غاړه، مرغټ، غوړه؛ ۲)مشكنه، مهره.

**مرېجه** (mareja) ښځ.م. و گ. مرېځى.

**مرېجي** (marejay) ښځ.م. د زوى د پيدايښت پـه شپږمه ورځ خيرات، مرېږي، عقيقه.مرېځي.

**مرۍ خوږ** (marayxūẓ) نـر.م. سـتوني خوږ، د مرۍ يا ستوني درد.

**مرۍ خـوږى** (mar[illegible]ūẓay) ص.نـــر.م. ۱)د ستوني په درد اخته؛ ۲)ستوني ناروغي.

**مريد** (murid) نر.م. پيرو، بالكى، منونكى، آرزو لرونكى، شاگرد، فرمان وړونكى.

**مرېژى** (marižay) نر.م. مرېږى، د زووني لـه امله بلنه، عقيقه، د زوى د زوكـړې په شپږمـه ورځ خيرات.

**مرېشكۍ** (mareškáy) ښځ.م. برگه مـرغۍ ده چې تل د اوبو پر غاړه گرځي.

**مريض** (maríz) ص. نر.م. رنځور، ناروغه.

**مرېله** (marelá) ښځ.م. ۱) غنيمت، لوټ، تالان؛ ۲)نوبت، وار، يارى.

**مرينه** (mariná) ښځ.م. يو ډول گرم توكر، وړين رخت.

**مرېڼا** (mariṇā́) ص. ۱)وران ويجاړ؛ ۲)نيمگړى كار؛ ۳)هغه ځمكه چې د كر لپاره تياره نه وي.

**مرېڼه** (maraynā́) ښځ.م. وينځه، مينځه، نوكره.

**مريى** (mrayáy) نر.م. غلام، مريي، زرخريد سړى.

**مرييتوب** (maryitób) نر.م. غلامي، د مريي كېدو حالت.

**مرييوال** (marayiwāl) نر.م. د مـريي يامريانو ساتونكى، د مريانو ښتن، د غلامانو ښتن.

**مړ** (maṛ) ص.نر.م(ج. مړي) مړ شوى، بې سا.

**مړام** (mṛām) نر.م.ج. ناراسته، سست، مړاوی.
**مړامتوب** (mṛāmtób) نر.م. ناراستي، تمبلتیا.
**مړامجا** (mṛāmjā́) ص. ۱) نـاتوان، کمـزوری؛ ۲) په ظاهر کې عاجز او په باطن محیل سړی.
**مړامول** (mṛāmawә́l) مص. مت. ناراسته کـول، سستول، تمبل کول.
**مړامېدل** (mṛāmedә́l) مـص. ل. سستېدل، لـټ کېدل، ورستېدل، شړېدل، خوساکېدل.
**مړان** (maṛā́n) ص. نر.م. مړنی، بهادر، تورزن.
**مړانجا** (mṛānjā́) ص. نر. پرکال، کاري واري.
**مړانه** (mṛā́na) ښځ.م. مېړانه، بهادري، توره.
**مړاو** (mṛā́w) ص. نر.م. ۱) وگ. مړام؛ ۲) مړ.
**مړاوتوب** (mṛāwtób) نر.م. سستي، مړاویتوب
**مړاوول** (mṛāwawә́l) مص. مت. وگ. مړامول.
**مړاوی** (mṛā́way) ص. نـر.م. ۱) د تـازه ضـد؛ ۲) پاتې شـونی، هغـه کتـغ چې تـازه نـه وي؛ ۳) خفه، افسرده.
**مړاویتوب** (mṛāwitób) نر.م. وگ. مړاوتوب.
**مړاوېدل** (mṛāwedә́l) مص.ل ۱) خفه کېدل، مړاوي کېدل، گونځې کېدل؛ ۲) پرېشانه کېدل.
**مړپالنه** (mәṛpālәna) ښځ.م. د مړي پالنه، د مړي لمانځنه، د مړي عبادت.
**مړپړ** (mәṛpā́ṛ) ص. نـر.م. ۱) مـړځپن؛ ۲) لکه د مړ؛ ۳) افسرده، مړاوی.
**مړتت** (maṛtát) ص. نر.م. ناراسته، ناړامه، شاړي واړي، جنجی، سست او بېکاره.
**مړتوب** (maṛtób) نر.م. مړتیا، مړکېدنه.
**مړتک** (mәṛták) نـر.م. ۱) لټ، سست، کاهل؛ ۲) سست گنډل، خامکوک.
**مړجوړا** (maṛjoṛā́) ص. نر.م. نامرد، ایجړا.
**مړځلی** (maṛǰā́lay) نر.م. لاش، جسد.

**مړځوی** (maṛǰoy) ښځ.م. مړدی، مني، نطفه.
**مړچونی** (maṛčonáy) ص.نر.م. غمگین، مړځپن.
**مړځپن** (maṛcapā́n) ص. نر.م. مړغېژن، کړغېژن، مړاوی، ځپلی شوی، بې خونده، مړځپی.
**مړځپی** (maṛcápay) ص.نر.م. لټ، تنبل، کاهل.
**مړخندی** (maṛxandáy) نـر.م. ۱) مکښند، مړه خندا؛ ۲) ص. نر.م. پس خند.
**مړخوبی** (maṛxóbay) ص. نر.م. په ژوړ خوب ویده کېدونکی، مړخوبه.
**مړخوږک** (mәṛxozák) نر.م. ۱) راکښېلی شوی؛ ۲) مړخوږی.
**مړخوږی** (mәṛxūzáy) نر.م. ۱) وگ. مړخوږک؛ ۲) سل، نري رنځ، توبرکلوز.
**مړخولی** (mәṛxū́lay) ص.نر.م. مړخولک، هغه سړی چې کمې خبرې کوي، کم گویه، شرمناک.
**مړد** (maṛd) ص. نر.م. مرد، تکړه، ځوان.
**مړدکی** (maṛdakáy) نر.م. مړدک ۱) د کوچنیانو د لـوبو د کانې نه جـوړ شوی تیک، بلوری؛ ۲) گولۍ؛ ٤) دستر گوگاتی.
**مړز** (maṛáz) نر.م. بتېر، نوزز، وربېز.
**مړزجنگي** (maṛazjangī́) ښځ.م. بتېر جنگي، ویرز جنگي.
**مړزری** (maṛzáray) نر.م. منی، مړخوی، نطفه.
**مړزرونی** (maṛzarū́nay) ص. نـر.م. مـړځپن، خفه، مړزړی.
**مړزړی** (maṛzáṛay) ص.نر.م. مړځپن، مړغونجا، مړده دل.
**مړزگه** (mṛazgá) ښځ.م. ۱) ډېر دنگر، ضعیف؛ ۲) خفگان؛ ۳) مرداره، درنگه، لاش، جسد.
**مړزگه خور** (maṛazgaxor) نر.م. کجیر مرغه، درنگه خور، لاش خور.

**مړژواند** (marẓ̌wā́nd) نر.م. ۱) ستومانه، بېزاره، غمگین؛ ۲) په ملاسته ساه اخیستنه.
**مړسترگی** (maṛstárgay) ص. نر.م. تیټ سترگی، بې شرم.
**مړستون** (mṛastū́n) نر.م. ۱) هدیره، قبر، قبرستان؛ ۲) دسپوږمۍ شپول.
**مړشومه** (maṛšū́ma) ښځ.م. د مړي د لومړۍ شپې خیرات.
**مړښت** (maṛáṣt) نر.م. مړېدنه.
**مړغنډی** (maṛğanḍáy) ښځ.م. بې اتفاقي، نفاق.
**مړغون** (maṛğū́n) نر.ن.م. مړڅپن؛ مړاوی.
**مړغونجا** (maṛğūnjā́) ص. ښځ.م. مړغون، مړڅپن.
**مړغونجی** (maṛğūnjáy) ص. نر.م. مړغونجا.
**مړغونې** (maṛağū́ne) ښځ.م. منغونې، کاکوړه، ترخه هندوانه، یو ډول بوټی دی.
**مړغېچن** (maṛğečə́n) نر.م. وگ. مړغون.
**مړغېښی** (maṛğešáy) نر.م. جاروبوټی.
**مړکندي** (məṛkandí) نر.م. وگ. مړغون.
**مړکول** (məṛkawə́l) مص. مت. وژل، قتلول.
**مړکېدونکی** (məṛkedū́nkay) مص.ل. ساه وتل، ژوند پای ته رسېدل.
**مړل** (mṛəl) مص. ل. مړ کېدل.
**مړمند** (maṛmánd) نر.م. وگ. مړوند.
**مړمونجی** (maṛmonjáy) وگ. مړغونجا.
**مړنتوب** (maṛantob) نر.م. زړورتیا، مېړانه.
**مړنگ** (maṛáng) نر.م. مانکی، ملاح، لامبوزن.
**مړنی** (maṛanáy) ص.نر.م. (ج. مړني) مېړنی، تورزن، زړه ور، باتور، تکړه، دلاور.
**مړو** (mṛo) نر.م. مېړه، خاوند.
**مړوب** (maṛób) ص. نر.م. خړوب، سېراب، پنه.
**مړوبول** (maṛobawə́l) مص. مت. خړوبول، پنه کول، سېرابول، په اوبو مړول.
**مړوبېدل** (maṛobedə́l) مص. ل. خړوبېدل، په اوبو مړېدل، سېرابېدل، پنه کېدل.
**مړوچ** (maṛwáč) ص. نر.م. طاقتور، قوي، تکړه.
**مړوچتوب** (maṛwačtób) نر.م. ځواکمني، پیاوړتیا، قوت، طاقت.
**مړوخوا** (mṛoxwā́) ښځ.م. د شمال لوری، د مړو په طرف، مقبره.
**مړوسه** (maṛosā) ښځ.م. د کوټې په دېوالونو کې هغه واړه واړه تاقونه چې د زینت لپاره وي.
**مړوشپه** (məṛošpá) ښځ.م. د مړو د تازه کولو هغه شپه چې خیرات په کې کوي.
**مړوښه** (maṛoṣá) ص. ښځ.م. مېړه والا، واده شوې ښځه.
**مړوښې** (maṛoṣé) ښځ. ج. واده شوې ښځې.
**مړول** (məṛawə́l) مص. مت. ۱) مړ کول، وژل؛ ۲) ډېر خوراک ورکول، په گېډه مړول.
**مړولاند** (maṛwlā́nd) ص.نر.م. مړولونی، مړی پرېوونکی، مړی مینځونکی.
**مړولونی** (maṛwlónay) نر.م. د مړي لمبوونکی، غسل ورکوونکی، مرده شوی.
**مړولنه** (maṛwləna) ښځ.م. مړي پرېولنه، مړي مینځنه، مرده شویي.
**مړولنځ** (maṛwlanǰ) نر.م. د مړي ولنځی، د مړي مینځلو ځای.
**مړوند** (maṛwánd) نر.م. له څنگل نه تر پنجې پورې د لاس حصه، لېچه، مړوندی.
**مړوندگانه** (maṛwandgā́ṇa) ښځ.م. کړه، باهو، وښي، بنگړي، باوو.
**مړوه** (maṛawá) نر.م. ج. د امر بنه، په گېډه مړوه، ډکاوه.

مړه (mára) ۱) تکیه کلام؛ ۲) شاید.
مړه تبه (mṛátaba) ښځ.م. د نري رنځ تبه.
مړه خوا (məṛaxwā́) ص. ښځ.م. موړ سترګی.
مړه خوړ (mṛaxwáẓ) نر.ج. پټه ناروغي، پټ تکلیف، پټ غم، خوږ، درد، مړهی.
مړه خوی (maṛaxóy) ص. ښځ.م. قوي خواړه، چې تر لږ خوراک وروسته د انسان نور خوراک ته خوا نه کېږي.
مړه ژبه (mṛažaba) ښځ.م. هغه ژبه چې له ګړهاره لوېدلې وي، هغه ژبه چې ویونکي و نه لري.
مړهکه (maṛhaká) ښځ.م. نري رنځ، سل.
مړهکی (maṛhákay) ص. نر.م. د نري رنځ رنځور.
مړهی (məṛaháy) ښځ.م. مړه تبه، نری رنځ، تبه.
مړهی تبه (maṛhaytába) ښځ.م. د نري رنځ تبه.
مړه لونې (mṛalū́ne) ښځ.م. نری رنځ، سل.
مړی (máṛay) ص. نر.م. مړ، مړ شوی بنیادم.
مړی (maṛáy) ښځ.م. ۱) دوډۍ، ۲) مبلمستیا؛ ۳) نوری، نمری، لقمه.
مړیتا (mṛitā́) نر.م. صافي، ښځونی.
مړیځی (maṛíǰay) نر.م. د مړي ایښوولو ځای، مړیخونه، مرده خانه.
مړېدل (maṛedál) مص.ل. ۱) په خېټه مړېدل؛ ۲) ډاډه کېدل؛ ۳) بډای کېدل.
مړي دود (maṛidod) نر.م. د مړي دود و مراسم.
مړيژن (maṛižán) ص. نر.م. مړژواندی، مرګونی، مرغبجن، مرغونجی، د مرګ په حال کې.
مړیستون (maṛistū́n) نر.م. ۱) قبر، زیارت؛ ۲) هدیره، ادیره.
مړیکه (mṛiká) ښځ.م. د دق ناروغي، سل.
مړي لېږد (maṛilezd) نر.م. د جنازې لېږدونه، درنګه لېږد.

مړینشمېر (mṛinšmer) نر.م. د مړو شمېر، د مړو سرشمېرنه، آمار وفیات.
مړینه (mṛína) ښځ.م. مرګ.
مز (maz) نر.م. د ژرندګړي مزد، مزدوري.
مزاج (mızā́j) نر.م. خوی، عادت، طبعه.
مزاجاً (mızāján) ق. د مزاج له لحاظه، په فعل پورې تړلی.
مزاح (mazā́h) نر.م. خندا، توکه.
مزاحمت (muzāhımát) نر.م. ربړونه، خنډ اچونه، اړی، ایسارونه، مخنیوی.
مزاحیه (mazāhyá) ق. توکیز، خنداور.
مزار (mazā́r) نر.م. زیارت، مړیستون، درګاه.
مزایل (mazāíl) نر.م. توغندی، راکټ.
مزد (mazd) نر.م. مز، معاوضه، مزدوري، اجوره.
مزدک (mazdák) نر.م. لمونځخونه، عبادتځای، جومات، معبد، هغه ځلور دېواله چې چت (کابن) و نه لري.
مزدکمانۍ (mazdkmāṇəy) ښځ.م. د جومات ودانۍ، د عبادتځای مانۍ.
مزدور (mazdū́r) نر.م. په اجورې کار کوونکی.
مزدوري (mazdū́ri) ښځ.م. ۱) په بیعه کار کول، خواري؛ ۲) د کار په بدل کې نغدې پیسې.
مزریتوب (mzaritū́b) ص.نر.م. مېړانه، بهادري.
مزری[1] (mzáray) نر.م ۱) یو بوټی دی چې د پانو څخه یې کټ بوڼ، پوزي، رسۍ او نور جوړېږي؛ ۲) زمری، شېر.
مزری[2] (mzaráy) نر.م. یو ډول لوبه ده.
مزغاوه (mazğāwá) نر.م. د صابون ځګ.
مزګتو (mazgaṭū́) نر.م. هغه لوښی یا کتوه چې د ژرندګړي شاګردانه ګي په کې اچوي.
مزل (mazál) نر.م. ۱) یون، تګ، سفر؛ ۲) واټن.

**مزه** (mazá) ښځ.م. خوند، ذايقه، لذت، عيش.
**مزه ناک** (mazanā́k) ص. نر.م. خوندور.
**مزی** (mázay) نر.م. تار، پړی، رسی، مزید، پوله.
**مژ** (maž) نر.م. پسه، مږ، گډ، گډوري.
**مژک** (mažák) نر.م. مږک.
**مژگان** (mužgā́n) نر.م.ج. بانه.
**مژوی** (mažwáy) ښځ.م.ج. مېخ، ستن، مږوی.
**مژه** (muža) ښځ.م.ج. بانه.
**مږ** (maẓ) نر.م. مژ، گډ، د غره گډ، گډوري.
**مږک** (maẓák) نر.م. موږک، منږک.
**مږکباز** (maẓakbā́z) نر.م. يو مارغه دی چې مږې خوري، مږک خور.
**مږک دام** (maẓakdā́m) نر.م. کيکړی، تلک.
**مږک رانه** (maẓakrāná) ښځ.م. د مږک سوړه.
**مږکمار** (maẓakmā́r) نر.م. نولی، خانی، سمور، موش خرما.
**مږکوری** (maẓakóray) نر.م. د مږک بچی.
**مږل** (maẓál) مص.مت. ۱) منبل، مروړل؛ ۲) وهل، طی کول.
**مږه** (máẓa) نر.م. گډوری، پسه.
**مږيمه** (maẓyéma) ښځ.م. هغه مېږه چې د پسه طلب کوي، هغه مېږه چې وار يې راوړی وي.
**مږيه** (maẓyá) ښځ.م. يو ډول بوټی دی.
**مسابقه** (musābiqá) ښځ.م. لوبه، سيالي.
**مساحت** (masāhát) نر.م. سيمه، پراخوالی.
**مسافر** (musā́fir) نر.م. ۱) پردی، پردېس، سفر کوونکی؛ ۲) خوار، فقير، سوالگر.
**مسافرت** (musāfirát) نر.م. سفر، واتن.
**مسافري** (musāfarí) ښځ.م. سفر، گرځېدنه.
**مساکن** (masā́kin) نر.م.ج. د مسکن جمع، مکانونه، ځايونه، کورونه.

**مساکين** (masā́kin) نر.م. خواران، غريبان.
**مسام** (masā́m) نر.م.د ويښتو په بېخ کې هغه نری سوری چې خوله ترې راوځي.
**مساوات** (musawā́t) نر.م. سموالی، برابري.
**مساوي** (musā́wi) ص. نب. په يوه کچه، برابر.
**مسأله** (masālá) ښځ.م. (ج. مسايل) ستونزه، ربړه، جنجال، لانجه.
**مسبب** (musabáb) نر.م. سبب جوړوونکی، د خدای تعالی يو صفتي نوم دی.
**مست** (mast) نر.م. بې خوده، نښه، بې هوښه.
**مستانه** (mastāná) ص.نب. لېونی، مست، نښه.
**مستبد** (mustabíd) ص. نر.م.ج. ظالم، جابر.
**مستپا** (mastpā́) ښځ.م. د پنځو کانو لوبه.
**مستپانه** (mastpāná) ښځ.م. يو ډول واښه دي.
**مستثنی** (mustasnā́) ص. ښځ.م. ممتاز، بېل.
**مستحب** (mustahíb) ص.نر.م. خوښ کړای شوی.
**مستحق** (mustahíq) ص.نر.م. وړ، حقدار، جوگه.
**مستحکم** (mustahkám) ص. نر.م. ټينگ، مضبوط، سخت، پايښت لرونکی.
**مستدام** (mustadā́m) ص. تلپاتې، دوام لرونکی.
**مسترد** (mustarád) ص. نر.م. رد شوی، نامنل شوی، نامنظور شوی.
**مستري** (mistarí) نر.م. کاريگر، ميخانيک.
**مستزاد** (mustazā́d) نر.م. ۱) زيات شوی؛ ۲) هغه شعر چې يوه مصرع يې اوږده او بله يې لنډه وي.
**مستسقي** (mustasqí) ص. ښځ. م. ۱) اوبه غوښتونکی، تږی؛ ۲) د استسقا رنځور.
**مستشرق** (mustašríq) نر.م.د لوېديځو هېوادونو يو پوه چې په ختيځو ژبو کې علمي لاس ولري.
**مستطيل** (mustatíl) نر.م. هغه هندسي شکل چې طول يې له عرض څخه زيات وي.

**مستعار** (mustaʂā́r) نر.م ۱) هغه څه چې په امانت احیستل شوي وي: ۲) بدل، غیر اصلي، پردی.

**مستعجل** (mustaʂjál) نر.م. په بیړه، د لنډ وخت، د لنډې مودې لپاره.

**مستعد** (mustaʂíd) ص. نر.م.ج. چمتو، تکړه.

**مستعفي** (mustaʂfí) ص.نب. استعفی ورکوونکی، گوښه کېدونکی.

**مستعمره** (mustaʂmirá) ښځ.م. کالوني، د بل تر واک لاندې.

**مستعمل** (mustaʂmál) ص. نر.م. کارېدلی، استعمال شوی.

**مستغرق** (mustaǧríq) ص. نر.م. ډوب، لاهو، اوبو وړی، ډېر اخته، بوخت.

**مستفید** (musrtafíd) ص. نر.م.ج. گټند، گټه لاس ته کړی، فایده من.

**مستقبل** (mustaqbál) نر.م. راتلونکې زمانه.

**مستقر** (mustaqár) نر.م. ځای پر ځای.

**مستقل** (mustaqíl) ص. نر.م. خپلواک، آزاد.

**مستک** (masták) نر.م. یو ډول واښه دي.

**مستکی** (mastakáy) نر.م. ۱) مستې؛ ۲) چکه؛ ۳) قروت.

**مستلزم** (mustalzím) ص.نر.م.ج. ۱) وړ، لازم؛ ۲) بیا غوښتونکی.

**مستند** (mustanád) ص.نر.م. منل شوی، باوري، د اعتبار وړ، تصدیق شوی.

**مستنطق** (mustantíq) نر.م. گروېږونکی.

**مستوفي** (mastū́fi) نر.م. محاسب، حسابوونکی.

**مستور** (mastū́r) ص. نر.م. پټ، پناه.

**مستول** (mastawál) مص. مت. نښه کول، په مستۍ راوستل.

**مسته** (mastá) ښځ.م.د مست مونثه بڼه، بې هوښه.

**مستي** (mastí) ښځ.م. بې هوښي، خمار، غرور.

**مستې** (masté) ښځ.ج. تومنه شوې شیدې، ماسته، پېه.

**مستیاره** (mastyārá) ښځ.م. یو ډول بوټی دی چې کم رنگه ژېړ گل لري.

**مستېدل** (mastedál) مص. ل. بې هوښه کېدل، نښه کېدل، خمارېدل.

**مسجد** (masjíd) نر.م. جومات، مزد ک.

**مسجع** (musajáʂ) ص. نب. هغه عبارت چې د قافیې خیال په کې ساتل شوی وي.

**مسح** (másha) ښځ.م. په یوه شي باندې لاس راکښل، لاس وهل.

**مسخر** (musaxár) ص. نر.م. تابع کړای شوی، تسخیر کړای شوی.

**مسخره چي** (masxaračí) نر.م. ټوکي، ټوکمار.

**مسخره‌گي** (masxaragí) ښځ.م. ټوکې ټکالې.

**مسخره** (masxará) ښځ.م. ص. ۱) ټوکه، وشته؛ ۲) صفت (ټوکي، ټوکمار).

**مسدس** (musadás) نر.م. ۲) شپږ ضلعي شکل؛ ۲) هغه نظم چې شپږ مصرعې ولري.

**مسدود** (masdū́d) نر.م.ص. تړلی، بند کړای شوی.

**مسرت** (masarát) نر.م. سوکالي، خوشالي.

**مسرف** (musríf) ص.نر.م. فضول خرڅي.

**مسرور** (masrū́r) ص. نر.م. خوشال، بې غمه.

**مسروقه** (masrūqá) ص. غلا شوی شی، هغه څیز چې غلو وړی وي.

**مسعود** (masʂū́d) ص. نر.م. نېکمرغه، بختور، مبارک.

**مسک** (mask) ص. نر.م.ج. مسېدلی، په خندا.

**مسکا** (muskā́) ښځ.م. بې اوازه خندا، تبسم.

**مسکاره** (maskā́rá) ښځ.م. سپی توکارل، سپی توکول، سپی تحریکول یا کیشکارل.

**مسکرات** (musakarā́t) نر. ج. نشه یېز شیزونه.

**مسکن**[۱] (maskán) نر. م. د اوسېدو ځای، وطن.

**مسکن**[۲] (musakín) نر. م. تسکین کوونکي درمل.

**مسکول** (muskawə́l) مص. مت. خندول، څوک په مسکا راوستل.

**مسکین** (miskín) ص. نر. م. بېنوا، اړ، محتاج.

**مسکۍ** (muskə́y) ښځ. م. ج. په خندا، خندا کونه.

**مسکی** (muskáy) نر. م. خندان، خندېدونکی.

**مسکېدل** (muskedə́l) مص. ل. خندېدل، تبسم کول.

**مسگر** (misgə́r) نر. م. د مسي لوښو جوړونکی.

**مسگري** (misgarí) نر. م. د مسي لوښو د جوړولو کار.

**مسل** (misə́l) نر. م. د مقدمې لیکلی تفصیل، دوسیه.

**مسلح** (musaláh) ص. نر. م. په وسله سمبال.

**مسلخ** (masláx) نر. م. وژنځای، د څارویو د حلالولو ځای.

**مسلسل** (musalsál) ص. نر. م. ج. پرله پسې، یو پر بل پسې، د یوه مخه، له څېرمې.

**مسلط** (musalát) ص. نر. م. ج. ۱) تاکل شوی، گومارل شوی؛ ۲) قابض، غالب.

**مسلک** (maslák) نر. م. ۱) څانگه، رشته؛ ۲) عقیده.

**مسلم**[۱] (muslím) نر. م. مسلمان.

**مسلم**[۲] (musalám) ص. نر. م. منل شوی، بشپړ، پوره، ښکاره، جوت.

**مسلماً** (musalamán) ق. په منل شوي توگه، په جوته توگه، په څرگنده توگه، په ښکاره توگه.

**مسلمان** (musulmā́n) نر. م. (ج. مسلمانان) مسلم، د اسلام منونکی.

**مسلمان مېشتی** (musulmānmeštay) نر. م. د مسلمانانو د اوسېدو سیمه یا ځای.

**مسلماني** (musulmānī́) ښځ. م. د مسلمان کار، د مسلمان مذهب.

**مسلول** (maslū́l) ص. نر. م. ج. راکښلی شوی، را ایستلی شوي، د نري رنځ رنځور.

**مسله** (masalá) ښځ. م. مصله، مصلی، جای نماز.

**مسلی** (musaláy) نر. م. جټ، جاروکش.

**مسمار** (masmā́r) ص. نر. م. ړنگ، وران، ویجاړ.

**مسموم** (masmū́m) ص. نر. م. زهرجن، زهرجن شوی، په زهرو لړلي خواړه، په زهرو ککړ مایعات.

**مسمیٰ** (musamā́) ص. نب. نومېدلی، نومېدلې.

**مسند** (musnád) نر. م. تکیه، تخت.

**مسنون** (masnū́n) ص. نر. م. ج. هغه کارونه چې د اسلام ستر پیغمبر محمد(ص) کړي وي.

**مسواک** (məswā́k) نر. م. یو ډول ډکی یا لرگی دی چې غاښونه پرې صفا کوي.

**مسوده** (musawidá) ښځ. م. هغه لیکلي یا ترتیب شوي مواد چې لا چاپ نه وي، تجویز.

**مسول** (musawə́l) مص. مت. خندول، مسکول.

**مسهری** (musharáy) ښځ. م. لوی کټ، پالنگ.

**مسئله** (masəlá) ښځ. م. ستونزه، جنجال، پېچلې خبره، دیني خبره.

**مسوول** (masū́l) ص. نر. م. ج. مدیر، ذمه‌وار، ذمه‌دار.

**مسوولیت** (masūlyát) نر. م. ذمه‌واري، ذمه‌داري.

**مسۍ** (masə́y) ښځ. نب. د یوې گاڼې نوم دی.

**مسی** (masáy) نر. م. لمسی، نمسی.

**مسي** (misí) ص. نب. له مسو نه جوړ شوی شیز.

**مسیحا** (masihā́) نر. م. ۱) د حضرت عیسی (ع) لقب؛ ۲) مج. پوه ډاکټر؛ ۳) محبوب، گران.

**مسین** (misín) ص. مسیین، مسي.
**مسېدل** (musedál) مص.ل. تبسم کول، خندېدل.
**مش** (maš) نر.م. ۱) دځنګ جېب، د تخرګ جېب؛ ۲) تخرګ، بغل.
**مشابه** (mušābíh) ص.نب. ورته، یوډول، یوځېر.
**مشابهت** (mušāb·hát) نر.م. یو رنګوالی، یو ځېروالی، ورته والی.
**مشاده** (mašādá) ص. نب. نمونه، بڼه، ځېره.
**مشاطه** (mašātá) ښځ.م. سینګارونکې، ارایشګره.
**مشاعره** (mušāʿará) ښځ.م. د شاعرانو غونډه یا محفل چې خپل شعرونه په کې اوروي.
**مشاق** (mašáq) نر.م. خطاط، تمرین کوونکی.
**مشال** (mašál) نر.م. ډیوه، څراغ، شمع، رڼا.
**مشاور** (mušāwír) نر.م. سلاکار، مشوره او نظر ورکوونکی.
**مشاوره** (mušāwirá) ښځ.م. مشوره ورکوونکې، سلاکاره.
**مشاهد** (mušāhíd) نر.م. کتونکی، لیدونکی.
**مشاهده** (mušāhidá) ښځ.م. کتل، لیدل، کتنه.
**مشاهره** (mšāhará) ښځ. میاشتنی، تنخواه.
**مشاهیر** (mašāhír) ص. نر.م. نومیالي، مېړني.
**مشایخ** (mašāyáx) نر.م. ج. بزرګان، نېکان.
**مشبه** (mušabá) ښځ. م. ورته، یو ځېر، یو ډول.
**مشبه به** (mušababihí) نب. متشابه، هغه څه چې مشبه ته ورته وي.
**مشبون** (mašbún) نر.م. غوبون، غوبه.
**مشتاق** (muštáq) نر.م. ص. مینه وال، شوقي، لېوال.
**مشتبه** (muštabíh) ص.نب. شکمن، مشوش شوی.
**مشترک**[1] (muštarák) ص. نر.م. ګډ، یو ځای، شریک.
**مشترک**[2] (muštarík) نر.م. ګډون کوونکی، برخه اخیستونکی، ونډه اخیستونکی.
**مشترکاً** (muštarakán) ق. په ګډه سره، یو ځای.
**مشترکین** (muštarikin) نر.ج. برخه وال، ګډون کوونکي، برخه اخیستونکی.
**مشتق** (muštáq) ص. نر.م. راوتلی، اشتقاق شوی.
**مشتکی** (muštakáy) نر.م. د ژرندې د مالک لپاره غله چې د مېده کولو لپاره یې ژرندې ته وړي.
**مشتري** (muštarí) نر.م. ۱) رانیوونکی، پېرونکی، اخیستونکی؛ ۲) د یوې سیارې نوم دی.
**مشتریان** (muštaryān) نر.ج. رانیوونکی، پېرونکي، اخیستونکي.
**مشتعل** (muštaʿíl) ص.نر.م.ج. ۱) بل، روښان؛ ۲) غوسه شوی، راپارېدلی، په قهر شوی.
**مشتمل** (muštamíl) ص. نر.م. شامل، یو ځای، ګډ، برخه اخیستونکی.
**مشته** (muštá) ښځ.م. د لرګي نه جوړه شوې ډبلې چې د څپلیو او بوټانو تلي پرې ټپوي.
**مشته** (maštá) فا. ص. و ګ. مېشته.
**مشدد** (mušadád) ص. نر.م. په کوم توکي باندې چې د شد نښه وي.
**مشر** (mašár) ص. نر.م ۱) سپین ږیری، د ډېر عمر خاوند؛ ۲) بزرګ، لوی؛ ۳) شریف، رهنما.
**مشرانو جرګه** (mašrānojargá) ښځ.م. د سنا جرګه، د سنا مجلس.
**مشرانه** (mašrāná) ښځ.م. ۱) النګی، د مشرتوب برخه؛ ۲) مـاجب چې قبایلي مشرانو ته ورکول کېدل.
**مشرتابه** (mašartāba) ښځ.م. د مشرتوب مغیره حالت، مشریزه، سرغندویه.
**مشرتوب** (mašartób) نر.م. سرپرستي، مشري.

**مشرح** (mušaráh) ص. نب. تشریح شوی، واضح شوی، سپړل شوی.

**مشرف** (mušaráf) ص. نر. م. عزتمند، نمانځلی.

**مشرق** (mašríq) نر. م. ختیځ، لمرحاته.

**مشرک** (mušrík) نر. م. شرک کوونکی، شرک راوړونکی.

**مشرکان** (mušrıkān) نر. ج. شرک کوونکي، شرک راوړونکي، چې له الله سره بل شریک ګڼي.

**مشرکین** (mušrıkin) نر. ج. و ګ. مشرکان.

**مشروب** (mašrū́b) نر. م. د څښلو شیان.

**مشروط** (mašrū́t) ص. نر. م. په شرط سره.

**مشروطه** (mašrūtá) ښځ. م. ص. ۱) هغه قضیه چې شرط په کې وي؛ ۲) هغه حکومت چې په قانون متکي وي؛ ۳) هغه هېواد چې شورا ولري.

**مشروطیت** (mašrūtyát) نر. م. چې شرطونه ولري، قانونیت.

**مشروع** (mašrūʿ) ص. نب. روا، په شرع برابر.

**مشري** (mašrí) ښځ. م. ۱) لارښوونه، رهبري، رهنمايي؛ ۲) عزت، لويي، درنښت.

**مشعل** (mašʿál) نر. م. رڼا، ډیوه.

**مشغول** (mašğū́l) ص. نر. م. ج. لګیا، بوخت.

**مشغولا** (mašğūlá) ښځ. م. بوختیا، مصروفیت، شغل.

**مشغولک** (mašğūlák) ص. هغه هلک چې هر وخت لوبې کوي، لوبغاړی.

**مشغولول** (mašğūlawál) مص. مت. لګیا کول، اخته کول، بوخت ساتل.

**مشغولېدل** (mašğūledál) مص. له بوختېدل، په څه کار اخته کېدل، لګیا کېدل.

**مشفق** (mušfíq) ص. نر. م. نرم زړی، مهربان، خواخوږی.

**مشق** (mašq) نر. م. تمرین، تکرار.

**مشقت** (mušaqát) نر. م. زیار، خواري، سختي.

**مشک** ^۱^ (mašk) نر. م. د اوبو زی، د اوبو ژی.

**مشک** ^۲^ (mušk) نر. م. هغه خوشبويه ماده چې د هوسۍ په نامه (ناف) کې جوړېږي.

**مشکل** (muškíl) ص. نر. م. ستونزمن، ګران، پېچلی، رټ.

**مشکڼ** (muškáṇ) نر. م. (ج. مشکڼي) ۱) نل، کاهي، يو ډول وابښه چې په جبو کې زرغونېږي؛ ۲) يو ډول غرنۍ وابښه.

**مشکڼه** (muškaṇá) ښځ. م. مرۍ چې نجونې يې په کاليو کې د ښکلا لپاره کاروي.

**مشکڼی** (maškaṇay) نر. م. يو ډول وابښه دي چې په غرونو کې زرغونېږي او څاروي يې خوري، د پشکالي لپاره هم وچېږي.

**مشکڼيز** (muškaṇíz) ص. په مشکڼيو جوړ، په مشکڼيو پېيلی.

**مشکور** (maškór) نر. م. شکر کوونکی، احسانمند.

**مشکوری** (maškoráy) ښځ. نب. و ګ. کالنډی؛ منبکوړی.

**مشکوک** (maškū́k) نر. م. ۱) تر شک لاندې؛ ۲) شکمن، شکاک.

**مشکوله** (maškolá) ښځ. م. د اوبو وړوکی ژی.

**مشکونډی** (maškūndáy) ښځ. م. ج. د هوسۍ د ناف مشک؛ ۲) د ماشوم د سر نوی رسېدلي وېښتان.

**مشکین** (muškín) ص. نر. م. تور رنګی، تور، د مشکو په رنګ، مشکي.

**مشکي** (muškí) ص. نر. م. ۱) تور، مشکین؛ ۲) توره بې لېشکي غومبسه، بمبيره.

**مشکی** (muškáy) ص. تور رنګی آس.

**مشلورګی** (mašlū gáy) نر.م. هغه پسه، مېږه یا وزه چې زیږه وېښتان ولري.

**مشلیکی** (mašlīkay) نر.م. جېبي کتاب، بغلي کتاب.

**مشمول** (mašmū́l) ص.نر.م. شریک کړی شوی.

**مشنګ** (mušúng) نر.ج. یو ډول حبوب دی.

**مشنګه** (mašangá) ښځ.م. د ختکی په څېر یو ډول خوشبو لرونکې مېوه ده.

**مشګینه** (mušginá) ښځ.م. د مشنګو ډوډۍ.

**مشوانۍ** (mušwāṇáy) ښځ.م. درنګ بوتل، دوات.

**مشورت** (mašorát) نر.م. مشوره، مصلحت.

**مشوره** (mašorá) ښځ.م. ۱) مشورت، مصلحت؛ ۲) یو ډول وړین قره قل. وګ. ماشوره.

**مشوق** (mušawíq) نر.م. تشویقوونکی.

**مشوله** (mašolá) ښځ.م. یو ډول نازک بوټی دی.

**مشهور** (mašhū́r) ص. نر.م.ج. نوموړی، نوم لرونکی، مخور، نامتو، نومیالی.

**مشهورول** (mašhūrawə́l) مص. مت. شهرت ورکول، مشهورول، نوم ورکول.

**مشیت** (mašīyát) نر.م. مرضي، خوښه، اراده.

**مشیمه** (mašīmá) ښځ.م. د ښځې په خېټه کې د ماشوم پرده.

**مښا** (maṣā́) ښځ.م. هغه پچې چې د پسه په لم او شا وخوا وړیو پورې نښتې او ځوړندې وي.

**مښتی** (muṣātay) ص. نر.م. نښېږدې، جوخت.

**مښتیا** (muṣtyā́) نر.م. یو د بل سره لګېدلی، یو د بل سره جنګېدلی.

**مښک** (maṣk) نر.م.ج. وګ. مشک(۲).

**مښکار** (maṣkā́r) نر.م. د ښکار مشر، تکړه ښکاري، ماهر ښکاري.

**مښکی** (muṣkáy) ښځ.م. یو ډول توره مرغۍ ده.

**مښکۍ** (muṣkáy) ښځ.م. ۱) یوه توره مرغۍ ده چې سپینه لکۍ لري؛ ۲) نر.م. مشک(۲).

**مښګیرک** (muṣgirák) نر.م. مږګیرک، هغه مرغه چې مږکان خوري.

**مښل** (maṣə́l) مص. مت. په لاسونو مروړل، مږل، سولول، مالش کول.

**مښلول** (maṣlawə́l) مص. مت. نښلول، لګول.

**مښلی** (maṣə́lay) ص.نر.م.ج. ۱) چې سولېدلی او مښلی شوی وي؛ ۲) مستعمل.

**مښلېدل** (maṣaledə́l) مص.ل. لګېدل، اصابت، خوړل.

**مښن** (maṣə́n) نر.م. وګ. مښل.

**مښود** (maṣūd) نر.م. زیار، کوښښ.

**مښودل** (maṣūdə́l) مص. مت. وګ. مښل.

**مښوده** (maṣūda) ښځ.م. مښوکه، تونګه.

**مښودی** (maṣoday) نر.م. کارېدلی، دویم لاس، مستعمل.

**مښوکه** (maṣūka) ښځ.م. مښوده.

**مښی** (maṣay) نر.م. مښنه، چاپي، مساژ، مالش.

**مصاب** (masā́b) ص. نر.م.ج. په یوه ناروغۍ ککړ، یوې ناروغۍ نیولی.

**مصاحب** (musāhíb) ص.نر.م. ملګری، اندیوال.

**مصاحبه** (musāhibá) ښځ.م. مرکه، سوال و ځواب.

**مصادره** (musādirá) ښځ.م. رد، قید، مستردول.

**مصادف** (musādíf) ص. نر.م. ق. برابر، سم، سمون.

**مصارف** (masā́rif) نر.ج. لګښتونه، خرڅونه، له لاسه ورکول، بایلل.

**مصافحه** (musāfihá) ښځ.م. پېژندګلوي، روغبړ، یو بل ته لاس ورکول، ستړي مه شي.

**مصالح** (masālíh) ښځ.ج. ۱) ګټې؛ ۲) مواد.
**مصالحت** (masālıhát) نر.م. روغه جوړه.
**مصالحه** (masālıhá) ښځ.م. جوړجاړی، روغه جوړه، توافق.
**مصايب** (masāíb) نر.ج. د مصيبت جمع، غمونه، دردونه، رنځونه، کړاوونه.
**مصبر** (masbír) نر.م. يوناني درمل.
**مصداق** (mısdáq) نر.م. ۱) تصديق کوونکی؛ ۲) صداقت، ثبوت.
**مصدر** (masdár) نر.م. ۱) د وتلو ځای؛ ۲) په ګرامر کې هغه لفظ چې په پای کې يې (ول، بدل) راغلي وي او نور فعلونه ورڅخه جوړېږي.
**مصر** (musír) ص. نر.م.ج. اسرار کوونکی، ټينګار کوونکی، ضد کوونکی.
**مصراع** (mısrā́ş) ښځ.م. مصرع، نيم بيتي.
**مصرف** (masráf) نر.م. لګښت، له لاسه ورکول، خرڅ.
**مصرفول** (masrafawál) مص. مت. لګول، د يو څه په بدل کې پيسې ورکول.
**مصروف** (masrū́f) نر.م.ص. بوخت، لګيا، اخته.
**مصروفيت** (masrūfıyát) نر.م. بوختيا، مشغولتيا
**مصطلحات** (mustalıhā́t) نر.ج. اصطلاحات، نومونې، د اصطلاح جمع، ترمينالوجي.
**مصفا** (musafā́) ص. ښځ.م. سپېڅلی، پاک، صفا.
**مصلح** (muslíh) ص. نر.م. سوله کوونکی، جوړه کوونکی، روغه کوونکی.
**مصلحت** (muslıhát) نر.م. ښه ورانديز، مشوره.
**مصلی** (masaláy) نر.م. کډه په سر، مسيالای، چوړی.
**مصلي** (musalí) ص. نر.م. لمونځ کوونکی.
**مصمم** (musamím) ص. نر.م. ټينګ، په زړه ولاړ.

**مصنف** (musanı́f) نر.م (ج. مصنفين) ۱) ليکونکی، تصنيف کوونکی، مؤلف؛ ۲) کمپوزر.
**مصنوعات** (masnūsā́t) نر.ج. لاسي توليدات، جوړ کړې شوې، توليد کړې شوې شيان.
**مصنوعي** (masnūsí) ص. نب. نقلي، جعلي.
**مصوب** (musawıb) نر.م. (ج. مصوبين) تصويب کوونکی، تاييدوونکی، پخلي کوونکی.
**مصوبه** (musawabá) ښځ.م. تصويب شوې، منل شوې، قبول شوې.
**مصور** (musawár) ص. نر.م. انځورګر، نقاش.
**مصوون** (masū́n) ص. نر.م. په امن، محفوظ.
**مصوونيت** (masūnyát) نر.م. تضمين، محفوظ.
**مصيبت** (musibát) نر.م. کړاو، درد، ستونزه.
**مضار** (mazā́r) نر.م. زيان، ضرر، تاوان.
**مضاربت** (muzārıbát) نر.م. د ګټې او تاوان د شراکت په شرط، د بل چا په پانګه تجارت کول، د سوداګرۍ لپاره چاته مال ورکول.
**مضارع** (muzā́rıs) نر.م. ۱) ورته، مشابه؛ ۲) هغه فعل چې په حال او يا راتلونکي زماني دلالت وکړي؛ ۳) د شعر يو بحر.
**مضاعف** (muzāsı́f) ص. نر.م دوه چنده.
**مضاف** (muzā́f) نر.م. زيات کړې شوې.
**مضاف اليه** (muzāfılayhí) نر.م. هغه نوم چې د اضافت «د» ولري يا ورته د يو شيز د ملکيت نسبت شوی وي.
**مضامين** (mazāmín) نر.ج. د مضمون جمع.
**مضايقه** (mazāiqá) ښځ.م. ۱) سره تنګول، سره غورتول؛ ۲) تنګی؛ ۳) دار، پروا، خاطر.
**مضبوط** (mazbū́t) ص. نر.م. ۱) ټينګ، کلک، پوخ؛ ۲) تندرست؛ ۳) ضبط کړای شوی.

**مضحک** (muzhík) ص.نر.م ۱) توکي، توکمار؛ ۲) خندا کوونکی.
**مضر** (muzír) ص.نر.م. ضرر او تاوان رسوونکی.
**مضراب** (mızráb) نر.م. د رباب یا ستار د غږولو زخمې، شاباز.
**مضروب** (mazrū́b) نر.م. وهل شوی، ټکول شوی، د حساب په اصطلاح ضرب شوی عدد.
**مضروب فیه** (mazrūbfíhı) ص.نر.م. هغه عدد چې بل په کې ضرب شوی وي.
**مضطرب** (muztaríb) ص.نر.م. وارخطا، خپه، زهیر، غمجن، ناکراره.
**مضمحل** (muzmahíl) ص.نر.م. تري تم، له منځه تللی، خپور وور، خپاره واره.
**مضمر** (muzmár) ص.نر.. پټ، په زړه کې ساتل.
**مضموم** (mazmū́m) ص.نر.م.ج. هغه توری چې پېښ ولري.
**مضمون** (mazmū́n) نر.م. موضوع، خبره، مطلب.
**مطابع** (matābíʂ) ښځ.ج. د (مطبعه)، د چاپ خونې جمع.
**مطابق** (mutābíq) ص.نر.م. سم، یو ډول، برابر.
**مطابقت** (mutābaqát) نر.م. سمون، یو شان والی، برابري.
**مطالب** (matālíb) نر.ج. د مطلب جمع.
**مطالبه** (mutālabá) ښځ.م. غوښتنه، دعوا.
**مطالعه** (mutālıʂá) ښځ.م. لوستنه، کتنه.
**مطبخ** (matbáx) نر.م. پخلنځی، پخلنځای.
**مطبعه** (matbaʂá) ښځ.م. چاپخونه، چاپځای.
**مطبوعات** (matbūʂát) نر.ج. ۱) خپرونې؛ ۲) چاپي خپرونې.
**مطرب** (mutríb) نر.م. ۱) سندرغاړی، سازنده؛ ۲) ډم چې اوس یې هنرمند بولي.
**مطرح** (matráh) ص.نر.م. ۱) نوموتی، اوځسار؛ ۲) د اچولو او غورځولو ځای؛ ۳) طرح شوی، وړاندې شوی.
**مطلا** (mutalā́) ص.نب. ۱) په غوړو کې لړلی؛ ۲) زېړ یا طلایي رنګ ورکړی شوی.
**مطلب** (matláb) نر.م. موخه، هدف، اراده.
**مظلمه** (mazlamá) ښځ.م. هغه څه چې په زور او ستم له چا نه اخیستل شوي وي.
**مظلوم** (mazlū́m) ص.نر.م. هغه څوک چې ظلم پرې شوی وي، په چا چې ظلم کېږي.
**مظلومان** (mazlūmā́n) ص.نر.ج. د مظلوم جمع.
**مظنون** (maznū́n) ص.نر.م. شکمن، اشتباهي.
**مظنه** (mazaná) ښځ.م. د ګومان کولو ځای، نرخ، بیعه، ارزښت.
**مظهر** (mazhár) نر.م. ښکارندوی، څرګندوی، د ښکاره کولو ځای.
**معابر** (muʂābır) نر.ج. د معبر جمع.
**معادل** (maʂādíl) ص.نر.م.ج. برابر، هم وزنه، مساوي، سیال.
**معادله** (maʂādılá) ښځ.م. د دوو شیزونو تر منځ د کچې معلومول، برابرتیا.
**معادن** (maʂādín) نر.ج. د معدن جمع، کانونه.
**معارضه** (muʂārızá) ښځ.م. د یوه شي له بل شي سره پرتله کول.
**معارف** (maʂāríf) نر.ج. پوهنه، علم، پوهه.
**معاریف** (maʂāríf) نر.ج. نامتو کسان، نومیالي.
**معاش** (maʂā́š) نر.م. ۱) ژوندون، د ژوند وسیله؛ ۲) روزګار؛ ۳) تنخواه.
**معاشرت** (maʂāšırát) نر.م. ګډ ژوند کول، یو تر بله مینه او دوستي کول.
**معاشقه** (maʂāšıqá) ښځ.م. مینه او محبت کول.

**معاصر** (maşāsír) ص.نر.م. اوسمهاله،هممعصر، همدوره، د اوسني زمانې.

**معاف** (maşáf) ص. نر.م. ج. بخښلی شوی.

**معافي** (maşāfí) ښځ.م. بخښنه، ښښنه، د بخښلو عمل؛ معذرت.

**معافيت** (maşāfiyát) ص. نر.م. بخښنه،توافق.

**معالج** (maşālíj) نر.م. ج. درملونکی، ډاکتر، طبيب، حکيم.

**معالجه** (maşālajá) ښځ.م. درملنه، علاج.

**معامله** (maşāmalá) ښځ.م لـه يو بل سره راکړه ورکړه، پېرودل او پلورل.

**معانقه** (maşāniqá) ښځ.م. ترغاړي کېدنه يا وتنه.

**معاني** (maşāní) ښځ.م. دمانا جمع، ۱) مطلبونه، موخې؛ ۲) هغه علم دی چې دکليمو سموالی او دکارونې ځای معلوموي.

**معاوضه** (muşāwizá) ښځ.م. بدل، عوض.

**معاون** (muşāwín) نر.م. مرستيال، لاس نيوی.

**معاهده** (muşāhidá) ښځ.م. ژمنه، تړون، لوظ، وعده.

**معاينه** (muşāyiná) ښځ.م. کتنه، ازموينه، پلټنه.

**معاينه خونه** (muşāynaxúna) ښځ.م. د ډاکتر کتنځی، چې رنځوران په کې گوري.

**معبد** (maşbád) نر.م. جومات، د عبادت ځای.

**معبر** (maşbár) نر.م. لار، دتېرېدو ځای، سړک.

**معبود** (maşbúd) نر.م. چې عبادت يې کېږي، د عبادت وړ، خدای پاک.

**معتاد** (muştád) ص.نر.م. ج. روږدی، عادت شوی.

**معتبر** (muştabár) ص. نر.م. ج. ۱) د باور وړ، د اعتبار وړ؛ ۲) سم؛ ۳) عزتمند، مخور.

**معتدل** (muştadíl) ص. نر.م.ج. دمنځنۍ درجې، هغه چې په اعتدال کې وي.

**معترض** (muştaríz) ص.نر.م. مخالف، اعتراض کوونکی.

**معترف** (muştaríf) ص. نر.م. منونکی، اعتراف کوونکی.

**معتقد** (muştaqíd) ص. نر.م. ج. عقيده لرونکی، منونکی، قبلوونکی.

**معتقدات** (muştaqidát) نر.ج. هغه چې انسان عقيده پرې لري.

**معتکف** (muştakíf) ص. نر.م. هغه څوک چې خپل ځان ځېله کوي، اعتکاف کوونکی.

**معتمد** (muştamíd) ص. نر.م. باوري، اعتمادي.

**معجزه** (muşjizá) ښځ.م. خارق العاده کار چې نور انسانان يې له مثل راوړلو څخه عاجز وي.

**معجون** (maşjún) نر.م. ۱) هغه مرکب درمل چې په گبينه او... کې اخښل کېږي؛ ۲) اخښلی شوی ۳) گډوډ، مرکب؛ ٤) يو ډول نښه يي درمل.

**معدن** (maşdán) نر.م. کان، خزانه.

**معدوم** (maşdúm) ص. نر.م. نابود کړی شوی، نشت، ورک شوی.

**معده** (mişdá) ښځ.م. د بدن هغه غړی چې د خوراک د ړولو او هضمولو چارې پر مخ بيايي.

**معذرت** (maşzirát) نر.م. پلمه، عذرغوښتل.

**معذور** (maşzúr) ص. نر.م. ج. ۱) اړ، احتياج؛ ۲) هغه څوک چې عذر يې منل شوی وي، چې عذر يې وړاندې کړی وي.

**معراج** (mişráj) نر.م. ۱) زينه، پوړی؛ ۲) هغه څه چې د هغه په وسيله انسان پورته ځي.

**معرفت** (maşrifát) نر.م. پېژندگلوي، پېژندنه.

**معرفه** (maşrifá) نر.م. هغه نوم چې د يوه خاص شي لپاره کارول شوی وي.

**معرفي** (maşrifí) ښځ.م. پېژندگلووالا، پېژندنه.

**معرکه** (maʂrıká) ښځ.م. جنګ، جګړه.

**معروف** (maʂrúf) نر.م. مشهور، نامتو، مخور.

**معرّا** (muʂarā́) ص. ۱) لوڅ، بربنډ؛ ۲) د نظم ځانګړی ډول چې د قافيې پابندي په کې نه وي شوې.

**معزز** (muʂazáz) ص. نر.م.ج. عزتمند، درونډ.

**معزول** (maʂzū́l) ص.نر.م.ج. ګوښه کړی شوی، لرې کړای شوی، له منصبه لرې شوی.

**معشر**[1] (muʂašár) ص. نر.م. د نظم يو ډول چې لس مصرعې لري.

**معشر**[2] (maʂšár) نر.م. ټولنه، د خلکو يوه ډله.

**معشوق** (maʂšū́q) ص.نب. مين، محبوب، ملګری.

**معشوقه** (maʂšūqá) ښځ.م. مينه، ملګرې.

**معصوم** (maʂsū́m) ص. ۱) بېګناه، له ګناه پاک؛ ۲) ساده.

**معصيت** (maʂsıyát) نر.م. ګناه، جرم.

**معضله** (maʂazlá) ښځ.م. ستونزه، پرابلم، کړاو.

**معطل** (maʂtál) ص.نر.م.ج. ټال، ځنډمن، په تمه ولاړ، منتظر، ښځينه بڼه يې معطله.

**معطلول** (maʂtalawál) مص.مت. ځنډول، ټالول.

**معطلېدل** (maʂtaledál) مص. ل. ځنډېدل، ټالېدل، ايسارېدل، ختمېدل.

**معظم** (muʂazám) ص. نر.م. لوړ، قدرمن، ستر، عزتمن، د عزت خاوند.

**معقول** (maʂqū́l) نر.م. چې عقل يې مني، په زړه پورې، وړ، مناسب، هوښيار، د باور وړ، د داد وړ.

**معکوس** (maʂkū́s) ص.نر.م.ج. اړولی، سرپه څېنکه، سرچپه.

**معلق** (muʂaláq) ص. نر.م.ج. ځوړند، کوړای.

**معلم** (muʂalím) نر.م. ښوونکی، استاد، لارښود.

**معلول** (maʂlū́l) نر.م. ۱) عيبجن، نيمګړی؛ هغه شی چې د علت په واسطه ثبت شوی وي؛ ۲) رنځور، خوار.

**معلوم** (maʂlū́m) ص. نر.م.ج. جوت، څرګند، ښکاره، واضح.

**معلومات** (maʂlūmā́t) نر.م. وضاحت، څرګندونې، د معلوم جمع.

**معلومېښت** (maʂlūmáṣt) نر.م. جوتېدل، ښکاره کېدل، څرګندېدل.

**معلومول** (maʂlūmawál) مص.مت. لټول، پيدا کول، څرګندول، ښکاره کول.

**معلومېدل** (maʂlūmedál) مص.ل. څرګندېدل، ښکاره کېدل، جوتېدل.

**معما** (muʂamā́) ښځ.م. ۱) پټ؛ ۲) اړه کيسې؛ ۳) ګرانه او پېچلې خبره، په رمز سره خبره.

**معمار** (mıʂmā́r) نر.م. دېوالچي، ختګر.

**معمر** (muʂmár) ص. نر.م.ج. بوډا، د ډېر عمر څښتن، عمرخوړلی.

**معمور** (maʂmū́r) ص. نر.م.ج. ۱) ډک، آباد، موړ؛ ۲) بند، تالا شوی.

**معمول** (maʂmū́l) نر.م.ج. ص. ورځنی، رواجي دود، عمل کړی شوی.

**معمولاً** (maʂmūlán) ق. هميشني، عادتاً.

**معمولي** (maʂmūlí) ص.نب. لږ غونډې، کم ارزښته.

**معنوي** (maʂnawí) ص.نب. ۱) مانوي، اصلي، حقيقي، ذاتي؛ ۲) دننه، باطني.

**معنويات** (maʂnawyát) نر.ج. مورال، روحيات، ارواييي حالت.

**معنی** (maʂnā́) ښځ.م. ۱) مانا، مقصد، اراده؛ ۲) مطلب، مدعا؛ ۳) وجه؛ ٤) اصليت.

**معیار** (mıʂyā́r) نر.م. د تول اله، پیمانه، کچه.
**معیاري** (mıʂyārí) ص.نب. منل شوی.
**معیت** (maʂyát) نر.م. ملګرتیا.
**معیشت** (maʂıšát) نر.م. روزګار، ژوند، ګوذاره.
**معین**[1] (muʂín) نر.م. مرستین، مرستیال، د وزیر مرستیال.
**معین**[2] (muʂayán) ص.نر.م. ۱) جوت، څرګند، ښکاره؛ ۲) ټاکلی.
**معیوب** (maʂyū́b) ص.نر.م.ج. وټ لرونکی، عیب لرونکی.
**مغاره** (mağārá) ښځ.م. سمڅه، شمڅه، سوړه.
**مغازه** (məğāzá) ښځ.م. پلورنځی، هټۍ، دوکان.
**مغازه وال** (mağāzawā́l) نر.م. هټیوال، د لوی پلورنځي څښتن، پلورنځیوال.
**مغالطه** (muğālıtá) ښځ.م. تېګي، دوکه، غولونه.
**مغانه** (mağā́na) ښځ.م. د ورانه غړی یا عضله.
**مغایر** (mağāyə́r) ص.نر.م. توپیر درلودونکی.
**مغایرت** (muğāyrát) نر.م. توپیر، فرق، تضاد.
**مغرب** (mağrı́b) نر.م. لوېدیځ، د لمر لوېدو لوری.
**مغربي** (mağrıbí) ص.نب. لوېدیزوال، په لوېدیځ پورې تړلی، لوېدیځ ته منسوب.
**مغرض** (muğrı́z) ص.نر.م.ج. مطلبي، غرضي.
**مغرور** (mağrū́r) ص.نر.م.ج. کبرجن، متکبر.
**مغرورېدل** (mağruredə́l) مص.ل. په ځان مینېدل، کبرجنېدل، متکبرېدل، ځان ورکول.
**مغز** (mağz) نر.م. ۱) ماغزه، دماغ؛ ۲) عقل؛ ۳) جړه؛ ٤) منځ؛ ٦) د وچې مېوې زړی.
**مغزن** (mağzán) ص.نر.م.ج. ۱) مغز لرونکی؛ ۲) د قوي مغزو څښتن.
**مغزی** (mağzáy) نر.م. غاړه، څټ، ورمېږ.
**مغزۍ** (mağzə́y) ښځ.م. پوله، څټ، غاړه.

**مغشوش** (mağšū́š) ص.نر.م. مشوش، خپه.
**مغضوب** (mağzū́b) ص. غضب کړی شوی، تر غضب لاندې.
**مغفرت** (mağfırát) نر.م. بخښنه، له ګناه تېرېدنه.
**مغلق** (muğláq) ص.نر.م.ج. پېچلی، رټ.
**مغلوب** (mağlū́b) نر.م.ج.ص. ماتې خوړلی.
**مغلوبول** (mağlūbawə́l) مص.مت. ماتول، ماتې ورکول، ناکامول.
**مغلوبېدل** (mağlūbedə́l) مص.ل. ماتې خوړل، ناکامېدل، له منځه تلل.
**مغموم** (mağmū́m) ص.نر.م. خواشینی، خپه، فکرمند.
**مغولی** (mağū́lay) نر.م. یو ډول سابه دي.
**مغیلان** (muğaylā́n) نر.م. یو اغزنه ونه ده چې اغزي یې ځېړه وي، د باقلي په څېر دانې لري.
**مفاجات** (mufājā́t) نر.م. ناڅاپه برید- د زړه حمله.
**مفاد** (mafā́d) نر.م. ګټه، فایده.
**مفاهمه** (mufāhımá) ښځ.م. یو تړلې خبرې اترې کول، په خپل منځ کې رضا کېدل.
**مفت** (muft) ص.نر.م.ج. وړیا، هسې، بې بیې.
**مفتخر** (muftaxı́r) ص.خ.ر.م. ویاړمن، ویاړ کوونکی.
**مفتخور** (muftxór) ص.نر.م. طفیلي، تیارخور.
**مفتش** (mufatı́š) نر.م. پلټونکی، تفتیش کوونکی، نظارت کوونکی.
**مفتن** (mufatán) ص.نر.م. فتنه اچوونکی.
**مفتي** (muftí) نر.م. فتوا ورکوونکی، فقیه.
**مفرد** (mufrád) ص.نر.م.ج. ۱) یوازې، ګوښی؛ ۲) یو، یوګړی؛ ۳) غیر مرکب.
**مفردات** (mufradā́t) نر.ج. لړلیک، توکي، مواد، عناصر.

**مفسد** (mufsíd) نر.م. فساد کوونکی، فسادي.

**مفسر** (mufasír) نر.م. تفسیر کوونکی، د قرآن شریف د ایتونو تشریح کوونکی.

**مفصل**[۱] (mufasál) ص.نر.م. په تفصیل سره، واضح، څرګند، په فصلونو وېشل شوی.

**مفصل**[۱] (mafsál) نر.م. بند، د هډوکي بندونه.

**مفصلاً** (mufasalán) ق. په بشپړه توګه، په تفصیل سره، له پوره جزیاتو سره.

**مفصلات** (mufsalā́t) نر.ج. د بدن د بندونو سیمه، کلي.

**مفعول** (mafʕū́l) ص.نر.م. ۱) په ګرامر کې object؛ ۲) هغه څوک چې ناوړه کار ورسره شوی وي.

**مفغن** (mufaǧán) ص.نر.م.ج. پښتو ژبې ته له نورو ژبو نه راغلي او د پښتو له قواعدو سره سم برابر شوي لغتونه.

**مفقود** (mafqū́d) ص. ورک، پټ، غیب.

**مفکر** (mufakír) نر.م. (ج. مفکرین) پوه، فکر کوونکی.

**مفکوره** (mafkūrá) ښځ.م. (ج. مفکورې) خیال، فکر، نظریه.

**مفلر** (maflár) نر.م. د غاړې رومال، ګلوبند.

**مفلس** (muflís) ص.نر.م. غریب، اړ، محتاج.

**مفلوج** (maflū́j) ص.نر.م.ج. ګوزن وهلی.

**مفلوک** (maflū́k) ص.نر.م.ج. ۱) تباه، برباد؛ ۲) محتاج، اړ.

**مفهوم** (mafhū́m) ص.نر.م. ۱) مانا، مطلب، پوهېدنه؛ ۲) منشا، مدعا؛ ۳) پوه شوی.

**مفید** (mufī́d) ص.نر.م. ګټور، فایده من.

**مقابل** (muqābíl) ص.نر.م ۱) مخامخ؛ ۲) دښمن، مخالف؛ ۳) سیال، برابر.

**مقابله** (muqābalá) ښځ.م (ج. مقابلې) ۱) مخامخ کېدنه؛ ۲) برابرېدنه؛ ۳) مخالفت؛ ٤) جګړه.

**مقاتله** (muqātılá) ښځ.م. (ج. مقاتلې) د وینې تویېدنه، د یوه بل وژنه، عام قتل.

**مقارن** (muqārín) نر.م.ج. تړلي، نږدې.

**مقاطعه** (muqātaʕá) ښځ.م. (ج. مقاطعې) [illegible] اړیکو ختمونه.

**مقاله** (maqālá) ښځ.م. ۱) الوظ، لوز؛ ۲) لیکلی مضمون؛ ۳) د کتاب برخه.

**مقام** (muqā́m) نر.م. ۱) درجه، رتبه، پوړ؛ ۲) د تم کېدو ځای؛ ۳) د کوزېدو ځای؛ ٤) د پېښې د پېښېدو ځای، وخت؛ ۵) په موسیقي کې یوه پرده.

**مقامات** (muqāmā́t) نر.ج. ۱) د مقام جمع؛ ۲) حاکمه طبقه، حاکمان.

**مقامي** (maqāmí) ص.نر.م. له مقام سره تړلی، ځای پرځای، ځایي.

**مقاومت** (muqāwamát) نر.م. نه په شا کېدل، په خپل دریځ ټینګ درېدل.

**مقایسه** (muqāyasá) ښځ.م. پرتله، مقابله.

**مقبره** (maqbará) ښځ.م. هدیره، روضه، مړستون.

**مقبوض** (maqbū́z) نر.م.ص. نیول شوی، ترلاسه شوی.

**مقبول** (maqbū́l) ص.نر.م. منل شوی، ښکلی.

**مقتدر** (muqtadír) ص.نر.م. زورور، څواکمن، د اقتدار خاوند، د قدرت خاوند.

**مقتدي** (muqtadí) نر.م. پیروي کوونکی، پیرو، په لمانځه کې تر امام وروسته درېدونکی.

**مقتل** (maqtál) نر.م. ۱) د وژلو ځای، د قتلولو ځای؛ ۲) مسلخ، قصابخانه.

**مقتول** (maqtū́l) ص.نر.م. ۱) وژل شوی، قتل شوی، ۲) مین، عاشق.

مقدار (miqdā́r) نر.م. ۱) کچه، اندازه؛ ۲) وزن، تول؛ ۳) شمېر، رقم؛ ٤) جونګ، مجموعه.
مقدر (muqadár) ص. نر.م. ۱) مخکې لیکل شوی؛ ۲) نصیب، قسمت، تقدیر.
مقدس (muqadás) ص. نر.م. پاک، سپېڅلی.
مقدم (muqadám) ص. نر.م ۱) لومړی؛ ۲) مخکې شوی؛ ۳) لوړ، اوچت؛ ٤) لازم، ضروري.
مقدماتي (muqadāmatí) ص. نب. د پیل، لومړنی، اولنی، مخکینی.
مقدمه (muqadamá) ښځ.م. ۱) معرفي، پېژندنه؛ ۲) سریزه؛ ۳) ستونزه، دعوا؛ ٤) پرېکړه.
مقدور (maqdū́r) نر.م. ۱) زور، قوت، طاقت؛ ۲) حوصله؛ ۳) ګنجایش؛ ٤) اختیار؛ ٥) وسیله ٦) جرئت؛ ۷) دولت؛ ۸) توان، قدرت، حکم.
مقر[1] (maqár) نر.م. قرارګاه، د اوسېدو ځای.
مقر[2] (muqír) ص. نر.م.ج. اقرار کوونکی.
مقرب (muqaráb) ص. نر.م. ۱) خاص ملګری، دوست؛ ۲) نېږدې، خپلوان.
مقرر (muqarár) ص. نر.م.ج. ګومارلی، ځای پر ځای، ثابت، ګومارل شوی.
مقررات (muqararā́t) نر.ج. قوانین، اصول، نظم.
مقررول (muqararawál) مص. ګومارل. ټاکل، یو کار ورسپارل.
مقرري (muqararí) ښځ.م. ګومارنه، ټاکنه.
مقررېدل (muqararedál) مص. ل. ګومارل کېدل، ټاکل کېدل.
مقروض (maqrū́z) نر.م. پوروړی، قرضدار.
مقری (maqráy) ص. نر.م. هغه هلک چې په لږ عمر کې ډېرې پخې او له مانا نه ډکې خبرې کوي.
مقسوم (maqsū́m) نر.م. ۱) وېشل شوی؛ ۲) نصیب، برخه، تقدیر.
مقسوم علیه (maqsūmṣalayhí) نر.م. هغه چې څه وربانډې تقسیم شي.
مقصد (maqsád) نر.م. موخه، مطلب، هدف.
مقصر (muqasír) نر.م. ګناهکار، مجرم، د سزا وړ.
مقصود (maqsū́d) نر.م. غوښتنه، غرض، هدف.
مقطر (muqatár) ص. نر.م.ج. څاڅکی څاڅکی، فلتر شوی، چاڼ شوی.
مقطع (maqtáṣ) ښځ.م. ۱) ذ قطع کېدو ځای، د بېلتانه ځای، د خبرو پای؛ ۲) د غزل یا قصیدې وروستی بیت.
مقعر (muqaṣár) نر.م.ج. ژوره کنده.
مقفی (muqafā́) ص. نب. قافیه لرونکی.
مقلد (muqalíd) نر.م. ۱) پیروي کوونکی، مرید؛ ۲) نقال، پېښې کوونکی؛ ۳) مسلمان چې په څلورو امامانو کې د یوه پیروي کوي.
مقلوب (maqlū́b) ص. نر.م.ج. اوښتی، نسکور.
مقنن (muqanín) نر.م. قانونپوه، قانوني، قانوندان.
مقوا (muqawā́) ښځ.م. هغه ډبل کاغذ چې د کتابونو او نورو د پوښ په جوړولو کې کار ترې اخلي.
مقوله (maqūlá) ښځ.م. متل، قول، ضرب المثل.
مقوي (muqawí) ص. نب. قوت ورکوونکی.
مقید (muqayád) ص. نر.م.ج. قیدکړی، مشروط، بندي.
مقیم (muqím) نر.م. ۱) ځای پر ځای، استوګن؛ ۲) قیام کوونکی، ودرېدونکی؛ ۳) قایم.
مکاتبه (mukātabá) ښځ.م. د خط یا لیک په ذریعه له یوه بل سره اړیکه ټینګول.
مکار (makā́r) نر.م. مکرجن، دوکه باز، چلباز.
مکافات (makāfā́t) نر.ج. بخشش، برخه، لنګی.
مکال (makā́l) نر.ج. آلات (د زرګری).

مکالمه (makālımá) ښځ.م. ۱) خبرې اترې؛ ۲) د درامې د لوبغاړو ترمنځ خبرې.
مکان (makā́n) نر.م. د اوسېدو ځای، ځای. کور.
مکتب (maktáb) نر.م. ښوونځی، مدرسه.
مکتبي (maktabí) ص.نب. زده کوونکی، شاګرد.
مکتوب (maktúb) نر.م. لیک، خط، چیټی.
مکټو (makaṭū́) نر.م. هغه سړی چې د هېڅ کسب او کار نه وي، کم عقل، ناروس، بېکاره.
مکدر (mukadár) ص.نر.م. خړ، تیاره، غمجن.
مکر (makr) نر.م. ۱) دوکه، فریب، ۲) غرور، کبر؛ ۳) نفاق، ٤) چالاکي.
مکرجن (makarján) ص.نر.م. مغرور، دوکه باز.
مکرر (mukarár) ص. نر.م. څو ځلې، تر یو ځل زیات، د یوه کار بیابیا ترسره کول.
مکرراً (mukararán) ق. په تکراري ډول، بیا بیا.
مکرم (mukarám) ص. عزتمن، قدرمن، لوی.
مکروب (mıkrób) نر.م. مکروب، یو ووړوکی ذره بیني موجود دی چې د ناروغیو سبب ګرځي.
مکروه (makróh) ص. نر.م. ج. ۱) د نفرت وړ، دکرکې وړ؛ ۲) ناسازه.
مکړک (makaṛák) نر.م. مکړی، یو ډول لرګین شی دی چې د پسونو په غاړو کې د ېړي ټینګولو لپاره اچول کېږي.
مکړګس (makaṛgás) نر.م. یو مرغه دی، ګرګس.
مکړن (makṛán) نر.م. د پسونو یوه ناروغي.
مکړی (makṛáy) نر.م ۱) وګ. مکړک؛ ۲) یو ډول سور چینجی دی؛ ۲) یو ډول ازغی دی.
مکشوف (makšū́f) ص.جوت، څرګند، ښکاره.
مکعب (mukaṣáb) ص. نر.م. څلورضلعي، هغه شکل چې اوږد والی، اوسور یې یو برابر وي.
مکک (makák) نر.م. څمکه.
مکلف (mukaláf) ص. نر.م.ج. هغه څوک چې باید شرعاً یو کار سرته ورسوي. ذمه وار، مؤظف.
مکلفول (mukalafawál) مص. مت. مؤظفول، ذمه وارول، یوڅوک په یوه دنده ګومارل.
مکلفیت (mukalafyát) نر.م. دنده، وظیفه.
مکمل (mukamál) ص. نر.م. ج. پوره، بشپړ، پای ته رسېدلی، تملمشوی.
مکنډی (makanḍáy) نر.م. څټ، ورمېږ، مرکنډ.
مکنه[۱] (makána) ص. زېړه خاوره.
مکنه[۲] (makná) ښځ.م. د ناوې مخپټونی.
مکڼه (makṇá) ښځ.م. چادري، بورکه.
مکوټ (makwáṭ) نر.م. سوی، سوځېدلی، وریت.
مکهانه (makhā́na) ښځ.م. تودری، وګ. جلوتري.
مکی (makáy) ښځ. یو ډول نری ګردی ډوډۍ ده.
مکیال (mıkyā́l) نر.م. ۱) هغه لوښی چې غله او ... وربانديې اندازه (تلل) کېږي. ۲) پیمانه.
مکېز (makéz) نر.م. ناز، نخرې، ادا.
مګ (mag) نر.م. روزان، په کوټه کې د لوګي د وتلو سوری، دریڅه، دوکانچه.
مګر (magár) ق.خو، لېکن، اما.
مګس (magás) نر.م. مچ، نګس، غوماشه.
مګسي (magasí) ص. ۱) سپین آس چې سره خاپونه ولري؛ ۲) تور یا توررنګی؛ ۳) مچی.
مګنه (magána) ښځ.م. کړکی، اورسی، مګنه.
مګه (magá) ښځ.م. د چای د څښلو لویه پیاله.
مل (mal) نر.م. ۱) ملګری، دوست، انډیوال، اشنا؛ ۲) شراب، خمر.
ملا[۱] (mlā́) ښځ.م. ۱) شا، د څټ او کناټو ترمنځ د وجود برخه؛ ۲) د مسور په نس کې هغه کڅوړه چې د ماشوم تر زېږېدو وروسته غورځېږي.

**ملا** (۱)(۲) (mulā́) نر.م. ۱) د جومات امام؛ ۲) عالم، فاضل، ناصح؛ ۳) د ک.

**ملا اذان** (mulāázā́n) نر.م. سپېده داغ، ملابانګ.

**ملابند** (mlābánd) نر.م. ملاترونی، ملاوستنی، کمربند.

**ملاتړ** (mlā́taŕ) نر.م ۱) مرسته، ننګه؛ ۲) دوستي، ملګرتیا.

**ملاتړل** (mlā́taṛál) مت.ف. د یوه چا حمایت کول، ننګه کول، ملګرتیا کول.

**ملاتړلی** (mlā́taṛálay) ص. نر.م. تیار، چمتو.

**ملاتړی** (mlā́táṛay) نر.م. ملاتړ کوونکی، پلوي، پرخوا، حامي.

**ملاتیر** (mlā́tī́r) نر.م. شمزۍ، ستون فقرات.

**ملاټوغی** (mlāṭūǧay) ص.نر.م. هغه چې ملا یې کږه شوې وي.

**ملاچرګک** (mlāčargák) نر.م. ګوډۍ چرګ، یو ډول مرغه دی، هدهد.

**ملاڅی** (mlācáy) نر.م. د ببل تاتک، ټکک.

**ملاح** (malā́h) نر.م. مانو، لمبوزن، بېړۍ چلوونکی.

**ملاحظه** (mulā́hazá) ښځ.م. ۱) کتنه، مشاهده؛ ۲) توجه، پاملرنه؛ ۳) مروت؛ ٤) ریا؛ شرم.

**ملاخوږی** (mlā́xūẓay) نر.م. د ملا درد.

**ملارګی** (mlāragáy) نر.م. سست، تنبل.

**ملاریا** (malāryā́) ښځ.م. یوه ناروغي ده.

**ملازم** (mulāzím) نر.م. چپړاسي، نوکر، خادم.

**ملازمت** (mulāzımát) نر.م. نوکري، خادمي.

**ملاست** (mlā́st) ص.نر.م. پروت، غځېدلی، ویده.

**ملاستل** (mlāstál) مص. ل. غځېدل، پرېوتل، څملاستل، ویده کېدل.

**ملاستو** (mlāstū́) نر.م. ملاوستنی، کمربند.

**ملاشینی** (mlāšínay) ص.نر.م. تنبل، کاهل.

**ملاغښی** (mlāğā́ṣay) نر.م. فقره، جمله، کرښه.

**ملاطوره** (mulātáwra) ص. نر.م. ملاته ورته، د ملا په څېر، ملاګی، صوفي، ملا ډوله.

**ملاقات** (mulāqā́t) نر.م. لیدنه کتنه، پېژندګلوي.

**ملاک** (malā́k) نر.م. ځمکوال، د ډېرې ځمکې خاوند.

**ملال** (malā́l) نر.م. خپه، غمجن، چورتي.

**ملاله** (malā́la) ص. ښځ.م. ښکلې اوجذابه ښځه.

**ملالۍ** (malāláy) ښځ.م. ۱) محبوبه، معشوقه؛ ۲) د یوې پیاوړې غازي پښتنې پېغلې نوم.

**ملالې سترګې** (malālestárge) ص.ښځ.م. له نازه ډکې سترګې، خمارې سترګې.

**ملاماتوونکی** (mlāmātawū́nkay) نر.م. دروند پېټی، دروند کار، دروند غم.

**ملاماتی** (mlāmā́tay) ص. نر.م. ۱) چې ملا یې ماته وي، تنبل؛ ۲) یو غوښې خوړونکی مرغه دی.

**ملامت** (malāmát) نر.م. ص. ګرم، پړ، شرمنده.

**ملامتول** (malāmatawál) مص. مت. ګرمول، شرمنده کول، پیکه کول، خجل کول.

**ملامتیا** (malāmatyā́) ښځ.م. ملامتي، ملامتوب.

**ملامتېدل** (malāmatedál) مص.ل. ګرمېدل، پیکه کېدل، شرمېدل، پړ کېدل.

**ملانۍ** (mlānə́y) ښځ.م. عالمه ښځه، ملا ښځه.

**ملاوستنی** (mlāwastánay) نر.م. ملاوستی، د ملا کمربند چې له یوه توکر څخه جوړ شوی وي.

**ملایکه** (malāyaká) ښځ.م. فرشته، پرښته.

**ملایم** (mulāyə́m) ص. نر.م. نازک، پوست.

**ملایمت** (mulāyamát) نر.م. پوستوالی، نازکي، نرمي، موافقت.

**ملایي** (mulāyí) ښځ.م. پېروی، رش.

**ملبس** (mulabás) ص. نـر.م. پرجـامـو پټ، پـه کالیو پټ.

**ملبوس** (malbū́s) نر.م. د اغوستلو جامې، کالي.

**ملبه** (malbá) ښځ.م. د ړنګ دېوال یا کور خـاورې، لوټې، ډبرې، ګټې چې ګډې وډې پرتې وي.

**مل پاسوال** (malpāswā́l) نـر.م. څـارندويي (پوليسي) بريد جنرال، سـرلښـکـر، د نظـامي بريد جنرال معادل.

**ملت** [1] (mılát) نـر.م. ۱) د يـوهېـواد وګـړي، د وطن خلک؛ ۲) دين، مذهب؛ ۳) قوم.

**ملت** [2] (mlat) ص.نر.م. پلن، پسورور.

**ملتفت** (multafít) ص. نر.م. ج. څير، متوجه.

**ملتوب** (maltób) نر.م. ملګرتيا، کومک، ملتيا.

**ملتوک** (maltók) نر.م. مله‌بنه، هغه‌اواز، شـپه يا شپيز غونډ چې څـانته يې جلا کـومه مـانا يا ګرامري چار نه څرګندېږي.

**ملتوي** (multawī́) ص. نـر.م. ځنډولى، معطل، تپال، شاته غورځولى.

**ملجا** (maljā́) ښځ.م. امنځاى، سرپناه، د اوسېدو ځاى.

**ملحد** (mulhíd) ص. نر.م. بې دينه، کافر.

**ملحق** (mulhíq) ص. لګېدلى، ګنډلى، يو ځاى.

**ملحقات** (mulhıqā́t) ښځ. ج. متمم، ضميمه، بشپړ، بشپړول.

**ملحوظ** (malhū́z) نر.م. په پام کې نيـولى، لحاظ کړى شوى، لحاظ ساتلى شوى.

**ملخ** (maláx) نر.م. ملخى، يو ډول حشره ده.

**ملخوزه** (malxóza) ښځ.ج. يـو ډول سـابه دي؛ حلبه، فاريقا.

**ملخولي** (malxolí) ښځ.م. يو ډول ژېړ رنګه فيرني.

**ملزم** (mulzím) ص. نر.م. تورن، متهم.

**ملزوم** (malzū́m) ص.نر.م. لازم يا له يوه بل څخه نه بېلېدونکى.

**ملعون** (malsū́n) ص. نر.م. لعنتي، رټل شوى.

**ملغلره** (málğalára) ښځ.م. مرغلره، دُر، مرواريد.

**ملغمه** (malğamá) ښځ.م. ګډ، ترکيب، معجون.

**ملغى** (mulğā́) ص. نب. لغوه شوى، رد شوى.

**ملک** [1] (malík) نر.م. د کلي مشر.

**ملک** [2] (malák) نر.م. ملائيکه، پرېښته، پرښته.

**ملک** [3] (mulk) نر.م. وطن، جايداد.

**ملک الشعراء** (malíkušuşarā́) د شاعـرانو مشر، په شاعرانو کې غوره شاعر.

**ملکوت** (malakū́t) نـر.م. لـويوالى، عظمت، د فرښتو نړۍ، عالم.

**ملکونډۍ** (malkunḍáy) ښځ.م.ج. يو ډول بوټى دى؛ و ګ. مارکونډۍ.

**ملکه** (malıká) ښځ.م. د پاچا ښځه.

**ملکي** (mulkí) ص. نب. غيرپوځي، غيرنظامي.

**ملکيت** (mulkıyát) نـر.م. مـالکيت، شخصي جايداد، شتمني.

**ملګرتوب** (malgartób) نر.م. دوستي، ياري.

**ملګرى** (malgáray) نر.م. (ج. ملګري) مرستيال، د لارې مل، دوست، يار، اشنا.

**ملګري** (malgarí) ښځ.م. ملګرتيا.

**ملګري ملتونه** (malgarímalatū́na) نـر.ج. ملل متحد، اقوام متحده، UN.

**ملګوبى** (malgubáy) نر.م. ص. مـالګينې اوبه، د مالګې مملول، مالګين محلول.

**ملل** (malál) مـص.ل. ۱) ملګري کېدل، استوګن کېدل؛ ۲) په لوبو کې يو د بل مـلـګـرتيا منل؛ ۳) تګ، حرکت، بهېدنګ؛ ٤) په ګډه اړول، په ګډه مېشته کېدل؛ ٥) ځملاستل، يو ځاى کېدل.

**مللي** (malalí) ښځ.م. ۱) سستي، تنبلي، لټي؛ ۲) تعلل، لاملی لټونه.

**ملم** (malám) نر.م. ملهم.

**ملمع** (mulamáʻ) نر.م. روښانه او ښکلی کړای شوی، هغه شعر چې یوه مصرع یا بیت یې په یوه او بل بیت یې په بله ژبه وي.

**ململ** (málmal) نر.م. یو ډول نرم نخي ټوکر دی.

**ملنځه** (malánja) ښځ.م. ملابند، ملاوستنې، کمربند، پټی، هغه پټی یا پړی چې ملا پرې تړي.

**ملنډه** (malánda) ښځ.م. ټوکه، ریشخند، مسخره.

**ملنګ** (maláng) نر.م. درویش، قلندر، بې پروا.

**ملنګه** (malangá) ښځ.م. د ملنګۍ تخم.

**ملنګۍ** (malangáy) ښځ.م. یو ډول برګه هندوانه.

**ملو** (malú) نر.م. ۱) د انګورو څېلۍ یا تاک؛ ۲) د اوبو ستره څولۍ؛ ۳) بوری، غوندی.

**ملوب** (malób) نر.م. ۱) خوله؛ ۲) نری وینه، زوي، زوزبه، ملوبه، خوناب.

**ملوټی** (maloṭáy) ص. نر.م. ۱) د مل تصغیر؛ ۲) هیجړا، نرښځی.

**ملوث** (mulawás) ص. نر.م.ج. ۱) ککړ، راګېر؛ ۲) ګنده، ناپاک، پلیت، لړلی.

**ملوک** (malúk) نر.م. ۱) ملکان، پاچاهان؛ ۲) یو ډول ټوکر دی؛ ۳) ص. نر.م. معشوق، محبوب؛ ٤) ښایسته؛ ۵) پاک، سوچه.

**ملوک الطوایفي** (malūkultawāyafí) ښځ.م. خان خاني، ځمکوالي.

**ملوکه** (malúka) ښځ.م. ملکه، محبوبه، معشوقه.

**ملول** (malúl) ص. غمجن، خپه.

**ملول** (malawál) مص.مت. استوګن کول، مېشت کول، مېشتول.

**ملونه** (mlúna) ښځ.م. لمینه، قیزه، جلب، جلو، ملوني، د چارو واګې په لاس کې نیول.

**ملوه** (malwá) ښځ.م. د انګورو تاک، مېلوه، کور.

**مله** (malá) ښځ.م. ۱) یو ډول ونه ده؛ ۲) ښښانه، جلب، الوتونکي، د مرغابۍ څېره چې له لرګي یا وښو نه جوړه شوې وي.

**ملهار** (malhár) نر.م. برسات، جړی، پرلپسې اورښتونه، پشه کال.

**مله غونډله** (mlağwandlá) ښځ.م. خرمه غونډله، ملګرتیایي غونډله، فرعي جمله.

**ملي** (mılí) ص. نب. په قوم او ملت پورې تړلی.

**ملیا** (malyá) ق. ۱) یو ځای، ګډ؛ ۲) ښځ.م. ملا.

**ملیار** (malyár) نر.م. مالیار، بنوال، باغوان.

**ملي پخلاینه** (mılípoxlāyána) ښځ.م. ملي روغه جوړه، ملي پخلاتوب، ملي مصالحه.

**ملیت** (mılyát) نر.م. ټبر، قوم.

**ملي روغه جوړه** (mılíroğajoṛa) ښځ.م. ملي پخلاینه، ملي سوله، ملي صلحه.

**ملېښه** (malešá) ښځ.م. ۱) نظامي قوې ته ورته قوه یا عسکر؛ ۲) یو ډول نخي ټوکر دی.

**ملي کول** (mlikawál) مت. ف. د عامه ګټې اخیستنې ور ګرځول، د ټول ملت ګډه شتمني ګرځول.

**ملي ګرام** (mligrám) نر.م. د ګرام زرمه برخه.

**ملي متر** (mlimítər) نر.م. د متر زرمه برخه.

**مماثل** (mumāsál) ص. نر.م.ج. شبیه، ورته.

**ممانعت** (mumanıʻát) نر.م. خنډ، بندښت، بندیز.

**ممانه** (mamāṇa) ښځ.م. یو بوټی او د هغه مېوه.

**ممتاز** (mumtáz) ص. نر.م.. ۱) امتیاز لرونکی؛ ۲) عزتمن، معزز، اعلی، لوړ، معتبر.

**ممتحن** (mumtahín) نر.م. ازموینه اخیستونکی.

**ممثل** (mumasíl) نر.م. ص. تمثیلوونکی، د یوې صحنې لوبغاړی.

**ممد** (mumíd) نر.م.ج. مرسته کوونکی.

**ممدوح** (mamdúh) ص. نر.م.ج. ستایل شوی، تعریف کړای شوی، ستایل شوی.

**ممېز** (mamréz) نر.م. انګېزه، محرک، تحریکوونکی، د سواره د پوندي سره لګېدلې یو مېخکی چې اس ته پرې پونده ورکوي.

**ممړه** (mamṛá) ص. ښځ.م. چپه، پسته.

**ممزوج** (mamzúj) ص. نر.م. ګډوډ، حل شوي، له یوه بل سره یو ځای شوي.

**ممسک** (mumsík) ص. نر.م. بخیل، وچ کلک.

**ممغوړن** (mamğoṛán) ص. نر.م. خیرن، ګنده.

**ممکن** (mumkín) ص. نر.م. د کېدو وړ، کېدونکی.

**مملايي** (mumlāyí) ښځ.م. له تیرې څخه راوتونکې توره ماده ده چې د تیرې غوندې کلکه وي او په یوناني درملنه کې د ملا درد، هډوکو درد او نورو لپاره کارېږي.

**مملکت** (mamlakát) نر.م. هېواد، وطن، خاوره.

**ممنوع** (mamnóʕ) ص. نر.م. ۱) ناروا؛ ۲) منع شوی، د قانون خلاف.

**ممنون** (mamnún) ص. نر.م.ج. مننندوی، منت بار، منت وړونکی، احسان مند، شکرګزار.

**ممنه** (mamaná) ممنه، دایه، رضاعي مور.

**ممڼ** (mamáṇ) ص. نر.م. مړاوی، جینګړ.

**مموله** (mamúla) ښځ.م. مېوه، ثمر، حاصل.

**مموليې** (mamúle) ښځ.ج. مېوې، حاصلات، اثمار.

**ممۍ** (mamáy) ښځ.م. یوه وړه حشره ده چې سور پوست او واړه تور ټکي لري.

**مميره** (mamirá) ښځ.م. مامېره، د کورکمن غوندې درمل چې په رنځجو کې ګډېږي او د نظر لپاره ډېره ګټوره وي.

**مميز**[1] (mamíz) نر.م. وچکې، مویز، کشمش.

**مميز**[2] (mumayáz) نر.م. ۱) ازموینې کنټرولوونکی؛ ۲) توپیر کوونکی، د ښه او بد جلا کوونکی.

**مميزه** (mumayızá) ښځ.م. ۱) ځانګړنه، مشخصه؛ ۲) ویرګول (،).

**من** (man) نر.م. ۱) زړه، اراده؛ ۲) تکل، مقصد؛ ۳) وروستاړی دی چې د ښتنن مانا ورکوي، - شته من؛ ٤) یو وزن دی؛ ۵) د یوې ونې ژاوله چې بني اسرائیلو ته د نعمت په ډول ورکړل شوې وه.

**منا** (maná) ښځ.م. یوه ځېره چې په ځنګل یا پټيو کې جوړه شوې وي او د پاسه پرې څه ږدي یا پرې پرېوځي، منا معمولاً چت هم لري، خو بې چته هم وي.

**مناجات** (munājāt) نر.م.ج. ۱) دعا، التجا؛ ۲) هغه نظم چې دخدای تعریف پکې شوی وي.

**منادي** (munādí) ص. نر.ښځ.م. اواز کوونکی، اعلان کوونکی، ډنډوروچي.

**منار** (munār) نر.م. څلی، برج.

**مناره** (munārá) ښځ.م. ۱) څلی، لوړ ځای، اوچت مقام؛ ۲) پسول، ګانه.

**منازعه** (munāzıʕá) ښځ.م. کړکېچ، دعوا.

**مناسب** (munāsíb) نر.م.ج. وړ، موزون، لایق.

**مناسبت** (munāsıbát) نر.م. موزونیت، له امله، له کبله.

**مناسک** (manāsík) نر.ج. ۱) مراسم؛ ۲) د حج د ادا کولو مراسم.

**مناصفه** (munāsıfá) ښځ.م. نیمایي.

مناظره (munāzirá) ښځ.م. بحث، مباحثه، تکرار.
منافع (manāfí) نر.ج. ګټې، فايدې.
منافق (munāfíq) نر.م. هغه څوک چې په زړه يې يو ه او په خوله يې بله وي.
منافقت (munāfiqát) نر.م. د منافق کړه وړه، د منافق حالت، رياکاري، مکاري.
مناقشه (munāqišá) ښځ.م. بحث، مباحثه، تکرار، جګړه.
مناقصه (munāqisá) ښځ.م. کمول، سيالي کول، د يوه شي د بيې په راټيټولو کې جګړه.
منال (manā́l) ښځ.م. ۱) شته، شتمني، جايداد؛ ۲) هغه ځای چې څه ګټه ترې حاصلېږي، لکه باغ...
منانی (munānáy) نر.م. کوچنی، وړوکی.
منای (munáy) نر.م. لوړ، کوتک، ډانګ.
منبر (mınbár) نر.م. په جوماتونو کې د محراب تر څنګ د امام د وعظ کولو لوړ ځای.
منبع (manbá) ښځ.م. د اوبو د راوتلو ځای، سرچينه.
منت (mınát) نر.م. ۱) احسان، نېکي، ښېګڼه؛ ۲) شکريه؛ ۳) عاجزي؛ ٤) منښته، نذر.
منت بار (mınatbā́r) ص.نر.م. منندوی، احسانمند، شکر کوونکی.
منتج (muntáj) ص. نر.م. نتيجه اخيستل، پرېې پوهېدل، استنتاج کول.
منتخب (muntaxáb) ص.نر.م.ج. ۱) چاڼ شوی؛ ۲) غوره شوی، ټاکل شوی.
منتخبول (muntaxabawə́l) مص. مت. ۱) چاڼ کول؛ ۲) غوره کول، خوښول.
منتخبېدل (muntaxabedə́l) مص. ل. چاڼ کېدل. غوره کېدل.

منت دار (mınatdā́r) نر.م. ۱) منندوی، احسان منونکی، ممنون؛ ۲) خوشحالی، خوشال.
منتر (mantár) نر.م. جادو، ټوټکه، سحر، افسون.
منتري (mantarí) ص. نر.م. جادوګري، کوډمار.
منتشر (muntašír) ص. نر.م. ۱) آخوا دېخوا، لر و بر؛ ۲) تيت و پرک، خپور ور.
منتظر (muntazír) ص.نر.م.ج. انتظار کوونکی، اميدوار، لاره کتونکی.
منتظم (muntazím) نر.م. انتظام کوونکی، اهتمام کوونکی.
منتقد (muntaqíd) نر.م. انتقاد کوونکی، کره کتونکی
منتقل (muntaqíl) ص. نر.م.ج. کوچېدلی، له يوه ځايه بل ته تللی.
منټ (manáṭ) ص.نر.م. د من مصغر، زړګی، زړګوټی.
منجاری (manjāráy) نر.م. ښنجاری، د ښځينه اړتياو د شيانو خرڅوونکی.
منجاور (munjāwír) نر.م.د زيارت خادم، منجور.
منجر (munjár) ص. نر.م.ج. نتيجه اخيستل، د کار سرته رسېدل. نتيجه ورکول.
منجرکی (munjarkáy) نر.م. ښايسته کټ.
منجره (manjará) ښځ.م. کلی، غوټی.
منجری (manjaráy) ښځ.م. منجرکی.
منجغی (manjağáy) نر.م. په فرج کې د غوښې ټوټه، منجقی.
منجل (manjál) ص.نر.م. پېچيده، ګران، مشکل.
منجلاب (manjalā́b) نر.م. خوسا او ګنده اوبه.
منجله (manjalá) ښځ.م. منجيله، موړه، بالښتک.
منجم (munajám) نر.م. ستور پېژندونکی، د نجوم د علم پوه، نجومي.

**منج منج** (mánjmanj) ص. نر. م. نیغ نیغ، مخکې مخکې.

**منجنیق** (manjaníq) نر. م ۱) د کلا ماتولو لپاره د پخوانی زمانې یوه آله؛ ۲) چنوغزه، مچوغنه.

**منجوړا** (manjūṛá) ص. سر. م. راغسونډ شوی، بېکاره، میجړا، ابجړا، نامرد.

**منجوله** (manjolá) ښځ. م. ۱) جاله، ۲) هغه دېګ چې چای په کې ایشول کېږي.

**منجه** (manjá) ښځ. م. هغه اوږد تار چې ګوډي پران هوا ته پرې پورته کوي. د مچنوغزې کوتړی.

**منجیت** (manjít) نر. م. د یوه سور رنګي بوټي کنډ دی، دم لاخوی، دم الثعبان. دغه کنډ په یوناني درملنه کې کارېږي.

**منجېدل** (manjedál) مص. ل. خوځېدل، ړچېدل، ښورېدل.

**منځ** (manǰ) ق. نر. م. مینځ، میانځ، مرکز.

**منځاله** (manǰā́la) ښځ. م. ځاله، جاله، منځوله.

**منځاوړون** (manǰāwṛū́n) نر. م. هغه نوم اوړون (اسمي ګردان) چې د اړوند نوم د منځني واول په بدلون سره ترسره کېږي.

**منځپانګه** (manǰpā́nga) ښځ. م. محتوا، محتوی، ګنجایش.

**منځپانګیز** (manǰpāngíz) نر. م. د منځپانګې اړوند، د محتوا اړوند، محتوایي.

**منځپېښې** (manǰpéṣe) ښځ. م. ج. معترضه، معترضه جمله.

**منځتاړی** (manǰtā́ṛay) نر. م. هغه تاړی یا وند چې دوه خپلواک ژبني توکونه سره تړي.

**منځتالوییز** (manǰtāloyíz) نر. م. هغه اواز چې د تالو منځ ته د ژبې په ورجګېدو سره ادا کېږي.

**منځتشی** (manǰtaš́ay) نر. م. ډډ، پوخ، خالي، ګوګ.

**منځتوک** (manǰtók) نر. م. منځنی توک. منځنی عنصر.

**منځتولی** (manǰtólay) نر. م. د منځني تول (وزن) لرونکی.

**منځټکی** (manǰṭákay) نر. م. منځنی ټکی، مرکزي نقطه.

**منځدریځی** (manǰdaríǰay) نر. م. نرمدریځی، منځلاری، معتدل.

**منځدریځي** (manǰdariǰí) ښځ. م. نرمدریځي، منځلاریتوب، اعتدال.

**منځزړی** (manǰzáṛay) نر. م. مرکزي هسته.

**منځشونډیز** (manǰšunḍíz) نر. م. غبرګشونډیز اواز لکه (م، ب).

**منځغری** (manǰǧáray) نر. م. د دوو غرونو تر منځ لاره، دره.

**منځغکي** (manǰǧakí) ښځ. م. مغزباب، مغزیات.

**منځګړتوب** (manǰagaṛtób) نر. م. منځ غوړیتوب، دریم ګړیتوب، میانجي.

**منځګړی** (manǰgáṛay) نر. م. ۱) دریم ګړی، منصف، مثالث، ۲) ښځ. منځګړې.

**منځګلې** (manǰgále) ښځ. م. منځوی ګوته.

**منځل** (manǰál) مص. مت. مینځل، وینځل، پاکول.

**منځلاری** (manǰlā́ray) نر. م. منځدریځی، معتدل.

**منځلاري** (manǰlārí) ښځ. م. منځدریځي، معتدلتیا، منځنی دریځ خپلول.

**منځلی** (manǰálay) نر. م. ارغمک.

**منځمنګی** (manǰmángay) نر. م. منځ عمری، د منځني عمر څښتن.

**منځمهالی** (manǰmahálay) نر. م. لنډه پېری، عبوري، انتقالي (حکومت ...)

**منځنی** (manǰanáy) ص. نر. م. وسطي، مرکزي.

**منځنی ختیځ** (manǰanáyxatíj) نر. م. خاور میانه.

**منځنی خج** (manǰanáyxáǰ) نر. م. هغه خج (فشار) چې د ويي په منځ کې راځي.

**منځنی سمندرګی** (manǰanáysmandargáy) نر. م. د مدیترانې بحیره.

**منځنی ښوونځی** (manǰanáyṣowanǰáy) متوسط ښوونځی، متوسط مکتب، متوسطه.

**منځواټنی** (manǰwāṭánay) نر. م. د منځنی فاصلې، د منځني مزل (راکټ، توغندی...)

**منځوال** (manǰwā́l) ص. نر. م. دریم ګړی، ثالث.

**منځوال خپلواک** (manǰwālxpalwā́k) نر. م. هغه واول چې د ژبې د دریځ له مخې د پورتني او کښتني په منځ کې ادا کېږي.

**منځومانه** (manǰūmā́na) ښح. م. منځکوره، منځوال، منځنی.

**منځونی** (manǰwánay) نر. م. منځقدی، میانه قدی، متوسطې ونې والا.

**منځوی** (manǰwáy) ص. نر. م. منځنی.

**منځه** (mánǰa) ښځ. م. ۱) د یوې ونې نوم، لمنځه، ارچه؛ ۲) وسط؛ ۳) د کېږدۍ د منځ تیر، متهه.

**منځی** (manǰáy) ښځ. م. ۱) د غره لمن؛ ۲) مرکز؛ ۳) د غره په لمن کې لاره.

**منځی** (manǰáy) نر. م. هغه ځای چې په منځ کې وي، مرکز، مرکزیت.

**منځېدل** (manǰedə́l) مص. ل. و ګ. منجهدل.

**منځیزول** (manǰizawə́l) مص. مت. منځوالول، متمرکز کول، تمرکز ورکول.

**منځیزونګ** (manǰizawə́ng) ښځ. م. منځیزونه، متمرکزونه.

**منچل** (mančál) نر. م. قرمزي چینجی.

**منحرف** (munharíf) ص. نر. م. باغي، سرکش، واپس ګرځېدونکی، مرتد.

**منحصر** (munhasír) ص. نر. م. مشروط، محدود، متعلق، اړوند.

**منحط** (munhát) ص. نر. م. فاسد، مخ پر زوال.

**منحل** (munhál) ص. نر. م. حل شوی، ګډ شوی، بې نظمه شوی، بې ترتیبه.

**منحني** (munhaní) ص. نب. ۱) ځوړند، کوږ؛ ۲) نری، دنګر.

**منحوس** (manhū́s) ص. نر. م. ج. خراب، مکروه، سپېره، بدبخت.

**مند**[1] (mánd) نر. م. ۱) د سېلاب لاره، شپېله؛ ۲) اد. لاحقه، چې د مالک مانا ورکوي.

**مند**[2] (mand) ص. نر. م. مندری، ټیټ، کم قامته، غونډه کی.

**مندارو** (mandā́rū) نر. م. یو ډول وابښه.

**منداړو** (mandā́ṛū) نر. م. و ګ. منداڼو.

**منداغ** (mandā́ğ) نر. م. یو ډول وابښه دي.

**منداڼو** (mandā́ṇū) نر. م ۱) ګنده بوټی؛ ۲) منداړو، د مستو د شاربلو لپاره لرګینه آله.

**منداو** (mandā́w) نر. ج. اوبښ، اوبښ رنګه، کاو، کبو، بوکن.

**مندته** (mandáta) ښځ. م. یو ډول خرمانۍ، د زردالو زړی.

**مندر** (mandár) نر. م. د هندوانو د عبادت ځای، درمسال.

**مندرج** (mundaráǰ) ص. نر. م. درج شوی، لیکل شوی.

**مندرو** (mandráw) نر.م. ۱) پرچال، د کلا دېوال؛ ۲) د دېوال پر سر د مورچو قطار.

**مندرۍ** (mandrə́y) ښځ.م. ۱) د غروړونو لښتۍ، ډنډۍ، والۍ؛ ۲) گوتيې، گوتمه.

**مندری** (mandráy) ص. نر.م. ټيټ قد لرونکی.

**منډړ** (mandáṛ) نر.م. يو غټ لرگی چې نور لرگي د پاسه پرې پرېږدي او جاله پرې جوړوي؛ ۲) هغه لرگي چې د دېوال په منځ د کلکوالي لپاره پرېږدي.

**مندسه** (mandasá) نر.م. اصل، نژاد.

**مندسته** (mandastá) ښځ.م. د هاون لاستی.

**مندکه** (mandáka) ښځ.م. ۱) زړی، زنی، د بادامو، مندتو او... زړي؛ ۲) پوغ، دسته.

**مندو** (mandáw) نر.م. ۱) و گ. منداو؛ ۲) تربه.

**مندوب** (mandób) ص. نر.م. هغه څوک چې د يوه کار لپاره داستازي په توگه گومارل شوی وي.

**منديل** (mandíl) نر.م. پټکی، لنگی، دستار.

**مندې** (mande) ښځ.ج. ميندې، مياندې، مورگانې.

**منډ**(۱) (manḍ) نر.م. خاموش، چپ، غلی، ساکت.

**منډ**(۲) (manḍ) نر.م. ۱) په واوره کې د پښو لاره، د پښو نښه؛ ۲) د پسخې لپاره د ختمې تيارول؛ ۳) پته، تلاش؛ ٤) د مهمل تابع.

**منډاچغ** (manḍācə̌ğ) نر.م. منډېچغ، بانې چغ.

**منډاس** (manḍā́s) نر.م. هغه څاروي چې يو ښکر يې مات وي، کونډی.

**منډاوو** (manḍā́wū) نر.م. غابنور.

**منډخولی** (manḍxū́lay) ص. نر.م. غلی، چوپ، خاموش، بې ژبی.

**منډر** (manḍár) نر.م. د ونې ښخ، سته.

**منډرکی** (manḍarkáy) نر.م. د ونې څانگه، منډکی.

**منډل** (manḍál) مص. مت. ۱) په زوره د ننه کول، ننه باسل؛ ۲) چاپې کول، کېمندل.

**منډو**(۱) (manḍáw) نر.م. ۱) د کوټو د مخې برنډه، څپر، پخلنځای؛ ۲) منزل؛ ۳) د اوبو کاو؛ ٤) د ونې بېخ؛ ۲) موند، ستنه.

**منډو**(۲) (manḍū́) نر.م. هغه لرگی چې د چارې د غبرگې رسۍ د کشولو لپاره ترل کېږي.

**منډوان** (manḍwā́n) نر.م. د کب نيولو چنگک.

**منډوس** (manḍós) نر.م ۱) گومبزه؛ ۲) پنډوس؛ ۳) د پنډې يا گېډۍ د وړلو لپاره د سر نه تاو کړل شوی څادر.

**منډوسه** (manḍósa) ښځ.م. يو ډول ځانگړې پگړۍ، لويه لونگۍ.

**منډوکی** (manḍókay) نر.م. منډکی، د ونې کوچنی ښاخ، د ونې کوچنی ښېخ.

**منډولی** (manḍólay) نر.م. ښايسته کوچنی منظم شی.

**منډونکی** (manḍū́nkay) نر.م. ننه باسونکی.

**منډوهل** (manḍwahál) مص. مت. تکل کول.

**منډه**(۱) (mánḍa) تېز تگ، ځغاسته، تېښته.

**منډه**(۲) (manḍə́) نر.م. (ج. منډان) د ونې د ښاخ هغه برخه چې تر پرېکېدلو وروسته په ونې پورې پاتې وي، غټ خند.

**منډهي** (manḍahí) ښځ.م. منډوي، منډه يي.

**منډېچغ** (manḍecə̌ğ) نر.م. و گ. بانېچغ.

**منډيرس** (manḍirás) ص. نر.م. تمبل، کاهل.

**منډيل** (manḍíl) نر.م. غټه پگړۍ، دستار.

**منډې ترړې** (mánḍetárre) ښځ.م. ۱) منډې رامنډې؛ ۲) هڅې، زيار؛ ۳) بې گټې هلې ځلې.

**منډې رامنډې** (mánḍerāmánḍe) ښځ.م. و گ. منډې ترړې.

**منډۍ** (manḍáy) ښځ.م. منډهي، د تجارت ځای.

**منډۍ** (manḍáy) نر.م. منډوي، د پېرلو-پلورلو ځای.

**منډي** (manḍí) نر.م. ۱) و گ. مونډی؛ ۲) د منډل له فعله جاري حالت.

**منزاښي** (manzāṣí) نر.م.ج. يو مېوه ده.

**منزجر** (munzajír) نر.م.ج. بېزار، متنفر.

**منزل** (manzál) نر.م. کور، موخه، ارمان، هيله.

**منزلت** (manzalát) نر.م. شان، مرتبه، مقام.

**منزوي** (munzawí) ص. نر.م.ج. گوښه، ايسته شوی.

**منزه** (munazá) ص. نر.م. پاک، سپېڅلی.

**منسوب** (mansū́b) ص.نر.م ۱) نسبت لرونکی، اړوند؛ ۲) چنغول، و گ. چنغله.

**منسوجات** (mansūját) نر.م. توکران، نساجي.

**منسوخ** (mansū́x) ص. نر.م.ج. رد شوی، ختم شوی، نسخ شوی.

**منسوخول** (mansūxawə́l) مص. مت. ردول، ختمول، نسخول.

**منسوخېدل** (mansūxedə́l) مص. ل. ردېدل، ختمېدل.

**منشا** (manšā́) ښځ.م. ۱) اصل، د پيدا کېدو ځای؛ ۲) لامل، وجه، سبب؛ ۳) اراده، موخه، مقصد.

**منشور** (manšū́r) نر.م. ۱) شاهي حکم، پروانه؛ ۲) د سياسي گوند کړنلاره؛ ۳) فرمان، اعلان؛ ٤) يو هندسي شکل. ۵) غوړېدلی.

**منشي** (munší) نر.م. ميرزا، ليکونکی، سکرتر.

**منښت** (manə́ṣt) نر.م. ۱) منل کېدنه، قبولي، منظوري، تصويب، نذر، نياز؛ ۲) منل.

**منښت اړيکوييکی** (manəṣtaṛikwayíkay) نر.م. هغه اړيکوييکی (ارتباطي حرف) چې د جملې مانا مثبتوي.

**منښته** (manə́ṣta) ښځ.م. مننه، نذر، قبولي، نذرانه.

**منصب** (mansáb) نر.م. مقام، رتبه، مرتبه.

**منصبدار** (mansabdā́r) نر.م. د اردو افسر، د رتبې خاوند، د مقام څښتن.

**منصرف** (munsaríf) ص.نر.م.ج. له يوه کاره څخه تېرېدونکی.

**منصف** (munsíf) نر.م. ۱) قاضي؛ ۲) انصاف کوونکی، عادل؛ ۳) درېمگړی.

**منصوب** (mansū́b) نر.م.ج. ۱) درېدلی، نيغ، قايم؛ ۲) هغه توری چې زور ولري.

**منصوبه** (mansūbá) ښځ.م. پروژه، سکيم.

**منطق** (mantíq) نر.م. ۱) هغه علم چې په قطعي دليلونو حق، حق او ناحقه، ناحقه ثابتوي؛ ۲) دنيا؛ ۳) جرئت، فصاحت.

**منطقه** (mantiqá) ښځ.م. ۱) علاقه، سيمه؛ ۲) د ملا تړلو رخت.

**منطقي** (mantiqí) ص. نب. په منطق برابر.

**منظر** (manzár) نر.م. ۱) د نظر ځای؛ ۲) نظاره؛ ۳) مخ؛ ٤) د نظر حد؛ ۵) کړکۍ؛ ٦) لوړ مکان.

**منظره** (manzará) ښځ.م. منظر، نظاره، نقشه.

**منظم** (munazám) نر.م.ج. ۱) په سپېنسي گنډلی؛ ۲) موزون کلام؛ ۳) په ترتيب او نظم.

**منظور** (manzū́r) ص. نر.م. منلی شوی، په پام کې نيول شوی، ليدلی شوی.

**منظورول** (manzūrawə́l) مص. مت. منل، قبلول، اجازه ورکول.

**منظوري** (manzūrí) ښځ.م. منل، قبولي.

**منظورېدل** (manzūredə́l) مص. ل. قبلېدل، منل کېدل، اجازه ورکول کېدل.

**منظوم** (manzū́m) نر.م.ج. ۱) منسلک، تړلی؛ ۲) منظم کړی، د شعر په ژبه ويلی.

**منع** (mansá) ښځ.م. ۱) چې اجازه ونه لري؛ ۲) چې بنديز پرې لگېدلی وي؛ ۳) ممانعت.

منع کول (mansakawál) مص. مت. ۱) اجازه نه ورکول؛ ۲) دعوت، بلنه، مېلمستیا.
منعقد (munsaqíd) ص. نر.م. ۱) جوړ، دائر؛ ۲) مقرر شوی، قایم شوی، تړل شوی، تړون.
منعکس (munsakís) نر.م. ۱) غبرگ، غبرگ شوی، عکس قبلوونکی؛ ۲) اړولی.
منعکسول (munsakısawál) مص. مت. غبرگول، انعکاس ورکول.
منفک (munfák) ص. نر.م. ج. گوښه، له خدمت نه لرې شوی، شړلی شوی، ایستلی.
منفي (manfí) ص. نب. ایستلی شوی، کم کړای شوی
منقار (munqār) نر.م. مښوکه، تونگه.
منقبض (munqabíz) ص. نر.م. محدود، تړلی، تر فشار لاندې.
منقسم (manqasím) ص. وېشل شوی.
منقش (munaqáš) ص.نر.م. نقش یا انځور شوی.
منقطع (munqatíʕ) ص. نب. قطع کېدونکی، فیصله کېدونکی.
منقل (manqál) نر.م. انگېټۍ، نغری.
منقوط (manqūt) ص. نر.م. ج. ټکی لرونکی، نقطه لرونکی.
منقول (manqūl) ص. نر.م. نقل شوی، ذکر شوی.
منقه (manqá) ښځ.م. ۱) د انگورو یو ډول چې وچوي یې؛ ۲) پاک، صفا، پاکیزه.
منکت (mankát) ق. د من په حساب نرخ.
منکتي (mankatí) نر.م. مزدور، بزگر چې د منکت په حساب مزدوري اخلي.
منکر (munkír) ص. نر.م. ج. انکار کوونکی، انکاري، گمراه، بې لارې.
منکرول (munkırawál) مص. مت. انکار ته تیارول، مجبورول، په انکار اړ ویستل.
منکرېدل (munkıredál) مص. ل. انکاري کېدل.
منکسر (munkasír) ص. نر.م. مات شوی، بېل شوی، توټې شوی.
منکشف (munkašíf) ص.نر.م.ج. کشف شوی، پوهېدلی، پام ورته شوی، پیدا کړای شوی.
منکه (manká) ښځ.م. د لانجې یا ستونزې یو ډول.
منکی (mankáy) نر.م. د وروځو ترمنځ ځای.
منگ[1] (mang) نر.م ۱) عمر، قد، ونه؛ ۲) غوندې، په څېر؛ ۳) وخت، موده
منگ[2] (mang) ص. نر.م. ۱) سرگردان، خپه؛ ۲) نر.م. رسوب، د وزو یوه ناروغي؛ ۳) کلکه شوې خټه؛ ٤) روزان، په کوټه کې دلوگي د وتو موری؛ ٥) د تندي یوه گاڼه ده.
منگاچه (mangāčá) ښځ.م. نوکه، نوکاره، د پېشو او نورو ځناورو پنجه.
منگاره (mangāra) ښځ.م. نوکاره، چونگاره.
منگاښه (mangāṣa) ښځ.م. درې غاښې، سکې، ښاخې.
منگال (mangāl) نر.م. ۱) انگیټۍ، نغری، منقل؛ ۲) لوی لور.
منگچه (mangčá) ښځ.م. و گ. منگاچه.
منگر (mangár) نر.م. ق. ۱) منگری؛ ۲) مگر.
منگری (mangaráy) نر.م. یو ډول مار، منگور.
منگړی (mangaṛáy) ښځ.م. څرمېښکی، کور.
منگریته (mangríta) ښځ.م. تېپر، شلغم.
منگس (mangás) نر.م. ۱) دخرو یوه ناروغي ده؛ ۲) په بدن باندې د خر رنگ ښې.
منگسی (mangasáy) ښځ.م. هغه سیلۍ چې شگې بادوي، ځینې خلک یې بنگسه بولي.
منگل (mangál) ښځ.م. (ج. منگلې) له ځنگل سره د مهمل په توگه راځي.

منګلوسه (manglosá) ښځ.م. ډولۍ.
منګلی (mangaláy) ښځ.م. وښې، یو ډول ګانه چې ښځې یې لاسونو ته اچوي.
منګنی (manganáy) نر.م. د مني د فصل اړوند لکه د مني وری، د مني مېوه او کرونده.
منګنیاره (mangnyára) ښځ.م. د انار ونه، ننګرېسه.
منګڼ (mangáṇ) نر.م. و ګ. منګوره.
منګو (mangó) ص. نر.م. احمق سړی.
منګوټی (mangoṭáy) نر.م. وړوکی منګی.
منګوچه (mangučá) ښځ.م. د پیشو پنجه.
منګور (۱) (mangór) نر.م. منګری، مار.
منګور (۲) (mangū́r) نر.م. د سپي بچی، کوکری، کوتری، چې سترګې یې لا نه وي غړولې.
منګورخورکه (mángorxoráka) ښځ.م. مار خورکه، د یوې مرغۍ نوم دی.
منګوروله (mángorwála) ښځ.م. مارچوبه.
منګوړه (mangwáṛa) نر.م. ۱) کتمل، خسک، کنه، خمنډکه؛ ۲) لحظه، وخت، تېرول.
منګول (mangwál) ښځ.م. (ج. منګولې) پنجه، په ځانګړي ډول د لاسونو، د پښو هغه ته زیاتره خپر ویل کېږي، کله ناکله یو د بل پر ځای هم کارېږي.
منګولور (mángwalwár) نر.م. د غټو منګولو ښبنتن، غټ پنجی.
منګومی (mangū́may) نر.م. د کوچنیانو یو ډول ناروغي ده.
منګی (mangáy) نر.م. ګړی، کوچنی خوم.
منل (manál) مص. مت. ۱) قبلول، ایمان راوړل؛ ۲) احسان مند کېدل؛ ۳) تسلیمول.
منلی (manálay) ص. نر.م. قبول، مسلم، محترم.

مننه (manána) ښځ.م. کورودانی، شکریه، تشکر، قدرداني.
منو (manó) ص. نر.م. زړګی، د من مصغر.
منور (munawár) ص. نر.م. نوراني، روڼ، روښانه.
منول (manawə́l) مص. مت. ایمنول، دلاسه کول، قرارول.
منی (۱) (manáy) نر.م. خزان، د کال دریم فصل.
منی (۲) (manáy) نر.م. امېل، هار، د ګلو امېل.
مني (maní) نر.م. ج. نطفه. مایه، د مردې اوبه.
مڼ (maṇ) نر.م. مڼ، پسه، مېړه.
مڼه (maṇá) ښځ.م. (ج. مڼې) سېب، یو ډول مېوه.
مڼه غونې (maṇağū́ne) ښځ.م. مرغونی، کاکوره، پوپانو، حنظل.
مڼیڅه (maṇicá) ښځ.م. هغه ډالۍ چې د سور و پلار (پلارګنۍ) له خوا ناوې ته ورکول کېږي.
مواجه (mawājíh) ص. نب. مخامخ کول یا کېدل، د یو چا یا یو شي پر وړاندې درېدل.
مواد (mawā́d) نر.ج ۱) اسباب، سامان؛ ۲) دلایل، وجوهات؛ ۳) ګنده ګي.
موار (mawā́r) نر.م. مهار.
مواز (muwā́z) نر.م. مقابله.
موازنه (mawāzıná) ښځ.م. اندازه، مقابله، پرتله.
موازي (mawāzí) ص. نب. ۱) بیه؛ ۲) اتکلي؛ ۳) برابر، مقابل؛ ٤) ساتندوی.
موازین (mawāzín) نر.ج. اصول، مقررات، قواعد.
مواس (mawā́s) نر.ج. ۱) غمخور، ساتونکی؛ ۲) موچي؛ ۳) چغلمار؛ ٤) مزل؛ ٥) پناه؛ ٦) تالانګر.
مواسه (mawā́sa) ښځ.م. کیسه، افسانه، ګپ شپ.
مواسي (mawāsí) ښځ.م. چغلي، شیطاني.
مواشي (mawāší) نر.ج. غواوې، مېږې، رمې.

**مواصلات** (mawāsılāt) نسر.ج. د حمل و نقل وسایل.

**مواظبت** (mawāzıbát) نر.م. ساتنه، پالنه، روزنه.

**موافق** (mawafíq) ص.نسر.م.ج. یوشهر، برابر، مناسب، په ښهر، مطابق.

**موافقت** (mawāfiqát) نر.م. موافقه، یوښهر والی، مناسبت، سمون.

**موافقتنامه** (mawāfiqatnāmá) ښځ.م. تړون، قرارداد، موافقه.

**مواقع** (mawāqí') ښځ.ج ۱) د موقع جمع، موقعې، ځایونه؛ ۲) ځانګړي وختونه.

**موانع** (mawāní') نسر.م. د مانع جمع، خنډونه، بندېزونه.

**موبل** (mobál) نر.ج. سامان او لوازم.

**موتازه** (mutāza) ص.ښځ.م. محتاجه، بې وسه، مجبور.

**موټ** (muṭ) نر.م ۱) موټی، ډلګی، څوکسه، لګته؛ ۲) یو ډول حبوب چې مال ته یې ورکوي، میټ.

**موټانه** (mūṭāna) ښځ.م. موټی، د سپارې موټی.

**موټروان** (moṭarwān) نر.م. موټرچلوونکی.

**موټک** (muṭák) نر.م. په لاس مني خارجول.

**موټه** (moṭá) ص.ښځ.م. څربه، غوښنه، مسته.

**موټۍ** (muṭə́y) ښځ.م. ۱) د سپارې موټی؛ ۲) ډنډس؛ ۳) ترلو وروسته په پټي کې د غنمو د وږو ټولونه؛ ٤) د اور لګيت درجن.

**موټۍ** (mūṭə́y) نر.م. ۱) د چړې، خنجر، ساتورې لاستی؛ ۲) موټک.

**مؤثر** (muasír) ص.نر.م. اغېزناک، اثرلرونکی.

**مؤثق** (muasáq) نر.م.ج. کره، ثقه.

**موج** (mawj) نسر.م ۱) چپه، څپه؛ ۲) جوش، ولوله؛ ۳) خیال، وهم؛ ٤) مستي، شوق.

**موجب** (mawjíb) نر.م ۱) واجب، لازم؛ ۲) فرض، ضروري؛ ۳) لامل، وجه، سبب.

**موجد** (mujíd) ص.نر.م. نوښتګر، ایجاد کوونکی، اېتکار کوونکی.

**موجز** (mujáz) ص.نسر.م. لنډ، لنډشوی، خلاصه شوی.

**موجود** (mawjúd) نر.م. حاضر، شته، هست.

**موجودول** (mawjūdawál) مص.مت. رارسول، شته کول، حاضرول.

**موجوده** (mawjūdá) ص.نب. حاضر، شته.

**موجودېدل** (mawjūdedál) مص.ل. حاضرېدل، شته کېدل، رارسېدل.

**موجودي** (mawjūdí) ښځ.م. فهرست، شته والی پوښتنلیک.

**موجودیت** (mawjūdyát) نر.م. شته والی، بقا.

**موجه** (muwajá) ص.نب. منطقي، معقول، مناسب.

**موجي** (mawjí) ص.نب. ۱) خوش طبیعته؛ ۲) څپاند.

**موچ پوچ** (mūčpūč) ص.نر.م. بېهوده.

**موچڼ ګنډونکی** (močaṇgandūnkay) نسر.م. چمیار، څپلۍ ګنډونکی، موچي.

**موچڼ والا** (močaṇwālā) ښځ.م. څپلۍ خرخوونکی.

**موچڼه** (močaṇa) ښځ.م. پڼه، څپلۍ.

**موچنوغزه** (močnóǧza) ښځ.م. مچوغنه، مچوغنه.

**موچي** (močí) ص.نر.م. څپلۍ جوړوونکی، چمیار.

**موچۍ** (močə́y) ښځ.م. ۱) یو ډول وزر لرونکې حشره ده؛ ۲) چمیاره، موچڼه، څپلۍ یا پڼې ګنډونکې.

**موڅه** (mocá) ښځ.م. ۱) برخه؛ ۲) پیټو، شټ، سیلۍ، د لوبو ګرده پیټۍ یا موڅۍ، د کرمبول پیټۍ.

**موخې** (moča̋y) ښځ.م. و گ. موخه.

**موخن** (muxán) نر.م. هدفمن، مقصدي، مطلبي، هدفمند.

**موخنتیا** (muxantyā́) ښځ.م. هدفمني، مقصد مندي، مطلب درلودنه.

**موخنیوی** (muxniwáy) نر.م. موخه نیونه، هدف ټاکنه.

**موخه** (mū́xa) ښځ.م. ۱) د غشیو ویشتلو ځانگړې لوبه؛ ۲) هدف، کچه، اندازه.

**موخه مار** (mū́xamā́r) ص.نر.م. نښه ویشتونکی، نخښه ویشتونکی.

**موخې** (mūxáy) ښځ.م. د نجونو بدل، یو بوټی دی چې دانې یې د کونځلو په څېر دي.

**مؤدب** (muadáb) ص.نر.م ۱) مهربان، زړه سواند، ۲) باکلتوره، مدني

**موده** (modá) ښځ.م. (ج. مودې) زمانه، وخت، نېټه، وختونه، زماني.

**موډ** (moḍ) نر.م. طبیعت، چرت، شبوه، روش.

**موډرن** (moḍrán) ص. فېشني، ماډرن، نوی، عصري.

**موډل** (moḍál) نر.م. طرحه، قالب، نمونه.

**مؤذن** (muazín) نر.م. اذان کوونکی، بانگي.

**موذي** (mozí) ص. نب. مضر، خطرناک، سخت.

**مور** (mor) ښځ.م. (ج. میندې) د پلار ښځه، والده، ادې.

**موراک** (morā́k) نر.م. موړه، ډېوال.

**موړال** (morā́l) نر.م. اروايي حالت، روحیه، جرأت.

**مورته** (morta) ښځ.م. نرښځی، ښځونک، ایجړا.

**مورتي** (mortí) ښځ.م. پړی، شکل، مجسمه، بت.

**مورتیا** (mortiā́) ښځ.م. ۱) آرام، ډاډ، خواخوږي؛ ۲) موروالی.

**مورچڼی** (morčā́ṇay) ص. نر.م. بېغیرته.

**مورچل** (morčál) نر.م. سنگر، مورچه، ښوکی.

**مورچه** (morčá) ښځ.م. مورچل.

**مورچه بند** (morčabánd) نر.م. مورچه نیولی، سنگرناستی. سنگر نیولی.

**مؤرخ** (muaríx) نر.م. تاریخپوه، تاریخ لیکونکی. تاریخ نگار.

**مور روی** (morráway) نر.م. په تې پورې ماشوم.

**مور زادی** (morzā́day) ص.نر.م. له موره زېږېدلی ...لکه معیوب.

**مورک** (morák) نر.م. ساده، احمق، ناپوه.

**مورکی** (morkáy) ښځ.م. مورته د مینې د خطاب کلیمه، (مورکه).

**مورگنی** (morganáy) ښځ.م. ماماواله، ماماگنی، د مور له خوا خپلوان.

**مورگه** (mórga) ښځ.م. ۱) غاړه؛ ۲) حاشیه؛ ۳) د سرحد لیکه؛ ۴) د غره څوکه؛ ۵) د لوښي غاړه؛ ۶) د ډوډۍ څنډه، ژۍ، اړخ.

**مورل** (morál) مص. مت. ۱) مېړل، مقررول، قبلول، قبضه کول؛ ۲) وری له مېږې نه بېلول.

**مورلی** (murláy) ښځ.م. د مار نیوونکي ځانگړې شپېلۍ، بیم، مرلی.

**مورمړی** (mormáṛay) ص. یتیم، یسیر.

**مورنی** (moranáy) ص.نر.م. مورنی؛ مور ته منسوب، کوم شیان چې د مور له خوا وي.

**مورنۍ ژبه** (moranayžába) ښځ.م. هغه ژبه چې مور یې پرې خبرې کوي.

**مورنیوه** (morníwa) ښځ.م. دیني مور، چا ته مور ویل.

**موروا کي** (morwākí) ق. مور سالاري، مور مشري.

موروالی (morwālay) نر.م. د مور ځانګړنې، د مور مینه.
موروثي (mawrusí) ص.نب. د پلار، نیکه او غور نیکه نه مادي او مانوي پاتې شوې شتمني.
موره (morá) ص. نب. کنګل، یخ، مایه، تینګ.
موره وهنه (morawahána) ښځ.م. شنوهنه، خالوهنه، واکسیناسیون.
مورینګه (moringa) ښځ.م. شیدو والا مور، رضاعي مور.
موری (moráy) ښځ.م. ۱) د کندو سوری، د تناره د اړخ سوری؛ ۲) ناله، لښتی؛ ۳) دریځه.
موري (mawrí) نر.م. ۱) یو ډول غټ سپین غنم؛ ۲) هغه اوبه چې د نورو اوبو په مخ کې روان وي؛ ۳) د داودي ګل یو ډول.
مورینه ژبه (morinažába) ښځ.م. هغه زړه او مړه ژبه چې نورې ژبې ترې راز بېړ بدلې وي لکه اریک، منشایي ژبه، اصلي ژبه.
موړ (moṛ) ص. نر.م. ۱) په ګېډه موړ؛ ۲) شتمن.
موړو (moṛó) نر.م. د (موړه) جمع مغیره حالت.
موړول (moṛawál) مص. مت. ۱) په ګېډه موړول، په چاډوډۍ خوړل؛ ۲) دولتمند کول.
موړه (moṛá) ښځ.م. ۱) په بدن باندې د وهلو نښه؛ ۲) داوبو ډېره؛ ۳) نس خوږي؛ ۴) مروړ، پېچ؛ ۵) منجیله، بالښت، ډېره؛ ۶) د دېوال سرماتی؛ ۸) له دورمو جوړه چوکۍ.
موړی (moṛáy) ښځ.م. پانګه، غوټه، ګنډه، شته.
موز (moz) نر.م. سپیغول، سپغول.
موزون (mawzūn) ص. نر.م. ج. ۱) هغه شعر چې وزن لري؛ ۲) ښایسته؛ ۳) لایق، مناسب.
موزه (mozá) ښځ.م. هغه ګاوله چې د پښو ښنګري پټ کړي، چکمه.

موزیک (mozík) نر.م. د موسیقي غږ، نغمه.
موزیم (mozyám) نر.م. هغه تعمیر چې په هغه کې لرغوني آثار ساتل کېږي.
موژغی (možgáy) نر.م. وګ. موږی.
موږ (muẓ) نر.ج. د متکلم جمع ضمیر، مونږ.
موږک (muẓák) نر.م. (ج. موږکان) ۱) مږک؛ ۲) غړی؛ ۳) پړانګ؛ ۴) نولی.
موږکباز (muẓakbā́z) نر.م. تپوس.
موږی (muẓáy) نر.م. هغه مېخ چې په ځمکه کې ټکوهل کېږي او څاروي ورپورې تړي. مږغی.
موس (mus) نر.م. ۱) وګ. موست؛ ۲) پور، قرض.
موست (must) نر.م. هغه مایع چې ډېره تینګه وي.
مؤسس (muasís) نر.م. بنسټ ایښودونکی، تاسیس کوونکی.
مؤسسه (muasisá) ښځ.م. انستیتوت، ټولنه، اداره.
موسکا (muskā́) ښځ.م. تبسم، بې غږه خندا.
موسکارلی (muskārálay) توکارل شوی، تو شوی، کیشکارل شوی، تحریک شوی.
موسکندی (muskandáy) نر.م. موسکی، خندا روی، متبسم، موسکا کوونکی، مسکېرای.
موسکېدل (muskedál) مص. ل. مسېدل، تبسم کول، په شونډو کې خندل.
موسکی (muskáy) ص. فا. نر.م. مسکند، موسکا کوونکی.
موسل (musál) مص. ل. ۱) موسېدل: تبسم کول؛ ۲) د درمند د پاکولو لوی غلبېل.
موسلا (musalā́) ښځ.م. مصلی، جای نماز.
موسلي (musalí) نر.م. ۱) یو ډول بوټی دی؛ ۲) وګ. مُسلي.
موسم (mosám) نر.م. فصل، وخت، د هوا حالات.

**موسمي** (mosamí) ص. نب. د کال په یوه فصل پورې تړلی، موسم ته منسوب.

**موسول** (musawə́l) مص. مت. مسکی کول.

**موسوم** (mawsū́m) ص. نر.م. نوموړی، نومولی.

**موسیقار** (musiqā́r) نر.م. ۱) یو خیالي مرغه، ققنس؛ ۲) یو ډول باجه یا ارمونیه؛ ۳) ص. د موسیقۍ ماهر.

**موسیقي** (musiqí) ښځ.م. موزیک، د راگ علم.

**موشاد** (mušā́d) ص. سوړ بوټ، څیږ، کلک.

**موشاده** (mušādá) ښځ.م. ۱) مخ، شکل، څېره، بشره؛ ۲) مجازاً خراب شکل.

**موشگیرک** (mušgirák) نر.م. یو ښکاري مرغه دی.

**موښانه** (muṣā́na) ښځ.م. و گ. غړکه.

**موښته** (muṣtá) ښځ.م. (ج. موښتې) گېډۍ، غونچه، دسته.

**موښل** (muṣə́l) مص. مت. مښل، مږل، مساژ ورکول، شاربل.

**موضع** (mawzíˀ) ښځ.م. سیمه، علاقه، کلی.

**موضوع** (mawzóˀ) ښځ.م. ۱) مضمون؛ ۲) مانا لرونکی لفظ؛ ۳) اصل شی.

**موعود** (mawˀū́d) ص. نر.م. وعده، ټاکلې، نېټه.

**موغري** (muğarí) نر.ج. هغه شنه داغونه چې د وهلو له امله پر بدن باندې راڅرگندېږي.

**موفق** (muafáq) ص. نر.م.ج. بریالی، کامیاب.

**مؤقت** (muaqát) ص. نر.م. د لنډې مودې لپاره.

**موقع** (mawqáˀ) ښځ.م ۱) وخت، چانس؛ ۲) د جېل دېوال ته څېرمه د کنټرول لپاره ځای.

**موقف** (mawqíf) نرم. دریځ، د درېدو ځای، حالت.

**موقوف** (mawqū́f) نر.م.ج. ۱) درولی؛ ۲) ټال کړی؛ ۳) وقف شوی؛ ۵) تړلی، منحصر.

**موک** (mok) نر.م. بډې، رشوت، موکه.

**موک خور** (mokxór) ص. نر.م. رشوتخور.

**مؤکل** (muakíl) نر.م. هغه څوک چې خپله مقدمه یا دعوا وکیل ته وسپاري.

**مول** (mol) نر.م. ۱) حقیقت؛ ۲) اصل، بنسټ؛ ۳) تاوان؛ ٤) شتمني؛ ٥) تربوزک، د پگړۍ پېڅکه.

**مولا** (mawlā́) نر.م. خدای، څښتن، صاحب.

**مولانا** (mawlānā́) نر.م. دیني لوی عالم، مولوي.

**مؤلد** (moalíd) نر.م. ۱) د زېږېدو ځای؛ ۲) زېږوونکی، تولیدوونکی.

**مؤلف** (mualíf) ص. نر.م. تالیف کوونکی، راغونډوونکی، د یوه اثر لیکونکی.

**مولود** (mawlū́d) نر.م. ۱) زېږېدلی، پیدا شوی؛ ۲) د پیدا کېدو ورځ؛ ۳) زوی، هلک.

**مولوي** (mawlawí) نر.م. مولانا، دیني عالم.

**مولۍ** (muláy) ښځ.م.ج. ملۍ، ترب، تروپ.

**مولی** (muláy) نر.م. شتېمبې، د یوه شي د میده کولو او ټکولو لپاره کار ځنې اخیستل کېږي.

**موم** (mūm) نر.م.ج. هغه نرمه او غوړه ماده چې له شاتو څخه راوځي.

**موم وزمه** (mūmwázma) ښځ.م. د موم غونډې، لکه موم، د موم په څېر.

**مومانه** (mūmā́ṇa) ښځ.م. و گ. ممانه.

**مومباتۍ** (mūmbātáy) ښځ.م. شمع، موماتۍ.

**موم جامه** (mūmjāmá) ښځ.م. ۱) د رخت یوه ټوټه چې شیان په کې تړي؛ ۲) هغه مومي ټوکر چې اوبه ورڅخه نه تېرېږي.

**مومړ** (mūmáṛ) ص. نرم. و گ. مومیایي.

**مؤمن** (momín) نر.م. ۱) ایمان راوړونکی، تقوا داره؛ ۲) سوچه مسلمان.

**مومیايي** (mūmyāyí) ښځ. م. هغه مساله چې پر مړي یې موښي څو چې مړی خراب نه شي.

**مونج** (munj) نر.م. يو ډول بوټی دی چې رسۍ ترې جوړوي.

**مونجي** (munjí) ص. نر.ج. له مونجو یا مونجانو څخه جوړ شوی څیز.

**مونجی** (munjáy) ص. نر.م. بې لکی، بونډی، بونډک، بونجی.

**موندغالی** (mundğắlay) نر.م. موند ځای، موندنځی، د میندني ځای، د کشف محل.

**مونډی** (munḍáy) نر.م. ۱) هغه سړی چې غونډه منډه ونه لري؛ ۲) د غنمو هغه ډول چې رنګ یې سپین او په وږي کې یې لشې نه وي.

**مونډۍ** (munḍə́y) ښځ.م. د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**مونځ** (munǰ) نر.م. نمونځ، لمونځ، عبادت.

**موند** (mund) ص. نر.م. روږدی، عادتي.

**موندرۍ** (mundrə́y) ښځ.م. لښتۍ، والۍ، د ښځو یو ډول پسول.

**موندری** (mundráy) ص. نر.م. ټیټکی، د لنډ قد خاوند.

**موندل** (mundə́l) مص. مت. ګټل، موندل، پیدا کول، کشفول.

**موندۍ** (mondə́y) ښځ.م.ج. هغه مېږه یا وزه چې واړه (لنډ) غوږونه ولري.

**موندی** (mondáy) ص.نر.م. هغه څاروی چې ښکر یې لنډ یا مات وي. مونډی، بونډی.

**مونډ** (munḍ) نر.م. ۱) اصل، بنیاد؛ ۲) جرړه، بېخ؛ ۳) مونډی؛ ٤) غلی، چپ.

**مونډن** (munḍə́n) ص. نر.م. هغه ونه یا بوټی چې ګڼې څانګې لري.

**مونډۀ** (múnḍə) نر.م. د ونې ستره څانګه، منډۀ.

**مونډی** (munḍáy) ص. نر.م. ۱) دیوه لاس خاوند؛ ۲) د غربېل د منځ غوږی.

**مونږ** (mūnẓ) نر.ج. د موږ ناسم مشهور.

**مونس** (munís) نر.م. ملګری، دوست، یار.

**مونګره** (mongrá) ښځ.م. غوټۍ، ناغوړېدلی ګل، خوغاړه، شګوفه ګل.

**مونه** (muná) ښځ.م. (ج. نمونې) ۱) څېره، جثه؛ ۲) پڑی، بت،، نانځکه، لیځکه، نمونه.

**مونی** (munáy) نر.م. ۱) بې ښکرو وزه؛ ۲) شیخ، پرهېزګار.

**موڼل** (muṇál) مص. ل. فخر کول، وياړل.

**موڼۍ** (muṇə́y) ښځ.م. ۱) پانګه، سرمایه؛ ۲) ښځ. ج. شوره، خولبوزی، بوجه.

**موڼی** (muṇáy) نر.م. وياړ، فخر.

**موهوم** (mawhū́m) ص. نر.م.ج. وهمي، خیالي، قیاسي، فرضي.

**موید** (moyád) ص. نر.م. مرسته کوونکی، قوت ورکوونکی.

**مویز** (mawíz) نر.م.ج. ممیز، وچکې، کشمش.

**موېښی** (mawíṣay) نر.م. بواسیر، د بواسیر غوټه.

**مهاجر** (muhajír) نر.م. هجرت کوونکی، خپل هېواد پرېښودونکی.

**مهار** (mahā́r) نر.م. د اوښ پېزوان.

**مهارت** (mahārát) نر.م. کسب، چار، هنر، پوهه.

**مهال** (mahā́l) نر.م. ۱) وخت، موقع؛ ۲) د کړ (فعل) زماني اړخ.

**مهالپېر** (mahālpér) نر.م. زماني پېر، زماني دور، زماني مقطع.

**مهالڅاری** (mahālcā́ray) نر.م. د کار وخت څارونکی، د کار د وخت متصدي.

مهالکښود (mahālkṣód) نر.م. د مهال اندازه لیکنه، کرونوګراف.

مهالنی (mahālanáy) نر.م. مهالیز، د مهال اړوند، موقت، موقوت.

مهالنۍ (mahālanáy) ښځ.م. د (مهالنی) مؤنثه بڼه.

مهالوېش (mahālwéš) نر.م. تقسیم اوقات، وخت وېشنه، د وخت تقسیم له پروګرامونو سره سم.

مهالویی (mahālwayáy) نر.م. زماني ویی (کلیمه) یا کړ (فعل)، واژه ءزماني.

مهالیز (mahālíz) نر.م. مهالنی، دغه وخت لپاره، موقتي، موقوت.

مهتمم (muhtamím) نر.م. ۱) اهتمام کوونکی، منتظم؛ ۲) پروف لوستونکی او کتونکی.

مهجور (mahjúr) ص. نر.م. ۱) جدا، بېل، جلا: ۲) کم نصیبه، محروم.

مهدي (mahdí) ص. نر.م. هدایت کوونکی.

مهذب (muhazáb) ص. نر.م. متمدن.

مهر[1] (muhr) نر.م. ټاپه، مارک، نښه، نښاني.

مهر[2] (mahr) نر.م. جایداد او پیسې چې مېرمنې ته د نکاح تړلو په وخت کې خپلې مېرمنې ته د ورکولو اقرار کوي.

مهر[3] (mihr) نر.م. مینه، وفا، محبت.

مهربان (mihrabā́n) ص. نر.م. مینه ناک، مینه کوونکی، مهرباني کوونکی.

مهرباني (mihrabāní) ښځ.م. ښېګڼه، مینه، نېکي

مهره (muhrá) ښځ.م. مرۍ.

مهلت (muhlát) نر.م. وقفه، وخت ورکونه.

مهلک (muhlík) ص. نر.م.ج. مړ کوونکی.

مهلکه (mahlíka) ښځ.م. خطرناک ځای یا حالت.

مهم (muhím) ص. نر.م.ج. ۱) لوی کار، درونډ کار؛ ۲) جګړه، کشاله، لانجه.

مهمات (muhimā́t) نر.ج. لازمي او ضروري شیان.

مهمل (muhmál) ص. نر.م. ۱) پرېښودی؛ ۲) بېکاره؛ ۳) کم عقل؛ ٤) فضول، بې ګټې؛ ۵) بې مانا؛ ٦) کمزوری؛ ۷) بې ټکي توری.

مهمل ترنګ (mahmal taṛáng) نر.م. هغه ترکیب چې له دوو رغندو توکو یې یو یا دواړه مهمل (بې مانا) وي.

مهندس (muhandís) نر.م. ۱) انجنیر؛ ۲) دهندسې د علم عالم یا پوه؛ ۳) نجومي؛ ٤) جوګي.

مهڼ (maháṇ) نر.م. لمبوزن، بېړۍ چلوونکی.

مهوت (mahwát) فا. نر.م. ماوت، فیلبان.

مهور (mahúr) ص. نر.م. مورک، احمق، کم عقل.

مهې (mahé) ښځ.ج. میوه ته ورته خوږ میوه غټې او میېې دانې دي چې پخېږي او پېیتې تړې جوړېږي.

مهیا (muhayā́) ص. نب. تیار، چمتو، حاضر.

مهیب (muhíb) ص. نر.م. وېروونکی، خطرناک.

مهیرک (mahirák) نر.م. وبا، طاعون.

مهین (mahín) ص. نر.م. نازک، صفا، ښوی.

مهینه (mahiná) ص. نب. ۱) د موسم په پیل کې کرل کېدونکی فصل؛ ۲) ښځ.م. میاشتنی معاش، سببونه، دنده، هواره، نرمه.

مۍ (may) ښځ.م. د دالو یو ډول دی، دانې یې تر مهو وړې دي.

میار (mayā́r) نر.م. ۱) عیب، نقص؛ ۲) ویاړ.

میاسه (myā́sa) ښځ.م. و ګ. میاشې.

میاشت (myā́št) ښځ.م. سپوږمۍ، میاشت.

میاشتنی (myāštanáy) ص. نر.م. په میاشتې پورې تړلی، په میاشتنۍ موده کې

**میاشتنی** (myā̆štanáy) ښځ.م. میاشیتنی، د (میاشتنی) مؤنثه بڼه.
**میاشه** (myā̆́ša) ښځ.م. میاشی.
**میاشی** (myā̆́šay) نر.م. مگس، ماشی، پشه.
**میانچې** (myāncé) ښځ.ج. میچې، میچه، یو ډول نری او باریکه مکروني.
**میاندې** (myāndé) ښځ.م. میندې، د مور جمع.
**میانه** (myāná) ص. ښځ.م. ۱) منځنی، وسطي؛ ۲) منځومیانه ونه یا قد.
**میانی** (myānáy) ښځ.م.ج. ۱) همیانی، د پیسو تیلی؛ ۲) سمون، د پرتوگ یوه برخه؛ ۲) پک.
**می پلو** (máypaláw) نر.م. له میو سره پوخ شوی پلو، له میو سره پوخ پولاو.
**میتل** (mitál) مص. ل. رگ وهل، ، کول.
**میتیازې** (mityāzé) ښځ.م.ج. ورې ي
**میتی** (mitáy) نر.م. کلنگ، گېنتی، میتی.
**میتایی** (mitāyí) جن، و گ. متایی.
**میتنگی** (mitangáy) ص. نر.م. متونگی، حرمونی، ارمونی.
**میثاق** (misā́q) نر.م. تړون، قول، لوظ.
**میچ** (mayč) نر.م. لوبه، مسابقه، سیالي.
**مېچ** (meč) نر.م. کچه، اندازه، وانه، میچ.
**مېچل** (meçál) مص. مت. مېچول، اندازه کول.
**میچن** (mičán) ښځ.م. لاسي ژرنده.
**مېچنی** (mečanáy) نر.م. کشپ، شین تنی.
**مېخ** (mex) نر.م. ۱) موږی؛ ۲) کوکه.
**میخونه** (mayxū́na) ښځ.م. بار، هغه ځای چې الکولي مشروبات په کې څښل کېږي.
**میخانیک** (mixānik) نر.م. هغه څوک چې په تخنیکي کارونو کې لاس لري.
**مېخچو** (mexčū́) نر.م ۱) مېخ، سنجاق؛ ۲) څنبک.
**مېخزین** (mexzín) نر.م. وسله تون، سلاح کوټ، د ټوپک ججوره.
**مېخک** (mexák) نر.م. د سرو یا سپینو زرو گاڼه ده چې نجونې یې په پوزو کې ټومبي.
**میدان** (maydā́n) نر.م. ډگر، سیمه، هواره.
**میر** (mir) ص. نر.م ۱) لارښود، هادي؛ ۲) دسیدانو اعزازي لقب؛ ۳) سردار، امیر، سالار، مشر.
**میرا** (mirā́) نر.م. په لوبو کې مشر یا کپتان.
**میرات** (mirā́t) ص. نر.م.ج. بې زویه، بې کسه.
**میراتخور** (mirātxór) نر.م. هغه څوک چې خپل خپلوان یې مړه او جایداد یې ده ته پاتې وي.
**میراته** (mirā́ta) ښځ.م. هغه مال، شته او جایداد چې د چا له مرگ نه وروسته پاتې وي.
**میراث** (mirā́s) نر.م. وراثت، ورثه، ترکه.
**میراثي** (mirāsí) ص. نب. ۱) میراث خوړونکی، ؛ میراث وړونکی.
**میراخور** (miraxór) ص.نر.م. د څارویو نگران، د څارویو ساتونکی، د اخور مشر.
**میراو** (mirā́w) نر.م. د اوبو وېشونکی.
**مېرځمن** (mercamán) نر.م. میرځی، دښمن.
**مېرځي** (mercí) نر.م ۱) دښمني؛ ۲) کرکه، کینه.
**مېرځی** (mercáy) نر.م. مېرځمن، دښمن.
**میرزا** (mirzā́) نر.م. لیکونکی، منشي، محرر.
**میرښکار** (mirṣkā́r) نر.م. ښکاري، هغه څوک چې ښکاري مرغان ساتي، مشر ښکاري.
**میرگاټ** (mirgā́ṭ) نر.ج. د وړو نجونو یوه لوبه ده چې د کانو په پورته غورځولو سره ترسره کېږي.
**میرگن** (mirgán) نر.م. ۱) اختر ډوبه، هغه خځلې او لرگي چې کوچنیان یې د اخترونو په لومړۍ شپه بلوي؛ ۲) یو ښکاري مارغه؛ ۲) د مېرگیو ناروغي لرونکی، میرگنځ، میرگند.

میرگه (mirgá) ښځ.م. ژی، څنډه، غاړه، میره.
مېرګي (mergí) ښځ.م. یوه دماغي رنځوري ده.
مېړل (meṛál) مص. ل. شمېرل، خوښول، تاکل.
مېرمن (mermán) ښځ.م. ارتینه، عورته، ښځه.
مېرنی (meranáy) نر.م. وګ. میرېزی.
مېره (merá) ښځ.م. ناسکه مور.
میره[1] (mayrá) ښځ.م. دښته، صحرا، بیابان.
میره[2] (míra) ښځ.م. ښکلې، ښایسته، صنم.
مېرېزی (merezáy) نر.م. مېرنی ورور، له میرې ورور، ناسکه ورور.
مېړانه (meṛána) ښځ.م. بهادري، زړورتیا.
مېړنتوب (meṛantób) نر.م. زړورتیا، مېړانه.
مېړنی (meṛanáy) ص.نر.م.زړور، هوډیالی.
مېړوښه (meṛóṣa) ښځ.م. (ج. مېړوښې)، واده شوې ښځه.
مېړه (meṛá) ص. نر.م ۱) خاوند، مالک، څښتن؛ ۲) د ودې مار، مېلمه پال، غیرتي.
مېړه مخي (meṛamaxe) ص.نر.م.ج. مېړنی، ننګیالی، پتیالی.
مېز (mez) نر.م. د لرګي هواره تخته چې په پښو ولاړه وي.
مېزان (mezā́n) نر.م. ۱) تله؛ ۲) جمع، مجموعه.
مېزر (mezár) نر.م. دحیواني سرې، انبار.
میزر (mayzár) نر.م. د ښځې ښکلې پړونی.
میزر (mizár) نر.م. بوقره، بوکره، پړونی، څادري.
مېزری (mezáray) نر.م. مزری، یو بوټی دی چې له پاڼو څخه یې پوزي، څپلی، رسی جوړوي.
میزوب (mayzū́b) ص. هغه څوک چې په هوش نه وي، مجذوب، لېونی.
مېژل (mežál) ل. ف. وګ. میتل.
مېږ (meẓ) ښځ.م. ګډه، مېږه.

مېږتون (meẓatū́n) نر.م. ۱) د مېږیو کورګی، د مېږیو سوړه؛ ۲) د غلط مشهور په ډول مېږي ته هم ویل کېږي.
مېږکی (meẓakáy) ښځ.م. یو ډول حیوان دی، چې مېږیان خوري، مېږي خور.
مېږوي (meẓwí) نر.ج. موږی، مېخونه، کوکې.
مېږه (méẓa) ښځ.م. مېږ، ګډه.
مېږی (meẓáy) نر.م. میږدی، مور، مورچه.
مېږیمه (meẓimá) ښځ.م. مېږمه، هغه مېږه چې نر پسه غواړي.
میسر (muyasár) ص. نر.م.ج ۱) هغه څه یا څیز، چې په اسانۍ سره لاس ته راشي؛ ۲) حاصل.
مېښت (meṣ̌t) ص. نر.م. ځای پر ځای، استوګن.
میښتک (miṣ̌ták) نر.م. وړه بوجۍ، وره ګونۍ.
مېښتن (meṣ̌tán) نر.م. استوګن، اوسېدونکی، اوسند، ساکن.
مېښتوړ (meṣ̌twáṛ) نر.م.ج. د مشتېدنې یا مېشتونې ور، د سکونت ور.
مېښتول (meṣ̌tawál) مص. مت. ځای پر ځای کول، استوګن کول.
میښتول (miṣ̌tawál) مص. مت. خمیره کول، خیشتول، اغږل.
میښته (miṣ̌tá) ص. نب. اخښل شوي، خیشته شوي.
مېښته (meṣ̌tá) ص. نب. استوګن شوی.
میښ (miṣ) نر.م. تېبدل، لېوالتیا، هوس.
مېښبه (meṣbá) نر.م. د مېښو پوونکی.
مېښ کټی (meṣkaṭáy) نر.م. د مېښې بچی.
میښل (miṣál) مص.مت. منبل، وهل، طی کول.
مېښه (méṣa) ښځ.م. منبه.
میعاد (miʿā́d) نر.م ۱) ټاکلی وخت؛ ۲) د ژمنې وخت.

**میل** [1] (mil) نر.م. ۱) ۱.٦ کیلومتره یو میل دی؛ ۲) د تېوبک میل؛ ۳) ډ ک؛ ۲) هغه آس چې د شا په پښو دربېږي.

**میل** [2] (mayl) نر.م. علاقه، مینه، خوښه، اشتها.

**میلاد** (milā́d) نر.م. ۱) د پیدایښت وخت یا ځای؛ ۳) پیدایښت.

**میلادي** (milādí) ص. نب. د عیسویانو عصر، دوره، وخت، نېټه.

**میلان** (maylā́n) نر.م. لېوالتیا، رغبت، علاقه.

**میلک** (milák) نر.م. یو ډول رخت، یو ډول ټوکر دی.

**مېلمانه** (melmānā́) نر.ج. مېلمونه، مهمان.

**مېلمستیا** (melmastyā́) ښځ.م. بلنه، دعوت.

**مېلمه** (melmá) نر.م. (ج. مېلمانه) مهمان.

**مېلمه پال** (melmapā́l) نر.م. مېلمه پالونکی، مېلمه دوست، هغه څوک چې د مېلمه د عزت و خدمت لپاره تیاکل شوی وي.

**مېلمه پالنه** (melmapālána) ښځ.م. د مېلمنو درناوی، قدر او عزت کول.

**مېلو** (melū́) نر.م ۱) خرس؛ ۲) ورل، زغمل، لرل.

**مېلوه** (meláwa) ښځ.م. کور، انګور.

**مېله** (melá) ښځ.م (ج. میلې) ۱) ګڼه ګوڼه، ازدحام؛ ۲) په ځانګړو ورځو کې د خلکو ټولېدنه؛ ۳) د سیل او تماشې لپاره د خلکو جمع.

**میله** (míla) ښځ.م. ۱) د اوسپنې سیخ؛ ۲) کوچیاني لنډمهالې استوګنځی، پنډغالی.

**میلی** (miláy) ص.نر.م. قهرجن، ژر په قهرېدل

**میلۍ** (miláy) ښځ.م. د اوربشو د میده کولو او اوبلو مېچن.

**میم** (mim) نر.م. د «م» توري تلفظ.

**میمه** (mimá) ښځ.م. انګریزه ښځه.

**مین** (mayán) نر.م. عاشق، شیدا، مفتون، فدا.

**مینا** [1] (maynā́) ښځ.م ۱) یو ډول کاڼی؛ ۲) د شرابو بوتل، صراحي؛ ۳) مانی، کور؛ ٤) ښارو.

**مینا** [2] (mīnā́) ښځ. شنه ښیښه، لعاب.

**مېنا** (menā́) ښځ.م. یو ډول تور رنګې مرغۍ ده.

**مینتوب** (mayntób) نر.م. په یوه چا باندې زړه بایلل، مینېدل، عاشق کېدل.

**مینځ** (myanǯ) نر.م. وګ. منځ.

**مینځل** (minǯál) مص. مت. وینځل، پاکول.

**مینځه** (mínǯa) ښځ.م. وینځه، خدمتګاره.

**میندل** (mindál) مص. مت. ګټل، موندل، پیدا کول، ترلاسه کول.

**مینده** (mində́) نر.م. وینده، بیننده، هغه نر پسه یا وزه چې خصي شوی نه وي.

**میندي** (mindí) جن. نکریزې، خینه، حنا.

**مینډ** (minḍ) نر.م. ۱) د اوبو ځل؛ ۲) د اوبو کته.

**مینکه** (maynáka) ښځ.م. مینا، شیراکه، شوراکه.

**مینګېدل** (mingedál) مص. ل. د پیشو اواز، میاو، میاو کول.

**مینوټ** (minóṭ) نر.م. د اصل کاپي.

**مینه** [1] (mína) ښځ.م. محبت، عشق، علاقه، الفت، خوښي.

**مېنه** (ména) ښځ.م. کور، وطن، هېواد.

**مینه** [2] (mayána) ښځ.م. عاشقه، محبوبه.

**مینه وال** (minawā́l) نر.م. مینه لرونکی، مینه لرونکي، علاقه لرونکی، علاقه لرونکي، لېوال، محبتي.

**مینه ناک** (minanák) نر.م. مهربان، زړه سواندی، مینه کوونکی.

**مینه ناکي** (minanākí) نسر.م. لېوالتیا، مینه کول، علاقه مندي، مینه ښودل.

**مینه وال** (minawā́l) ص. نسر.م.ج. ملګری، دوست، اشنا.

**مینېدل** (mayanedál) مص. ل. عاشق کېدل.

**میور** (myor) نر.م. مور، طاوس، یو ډول مارغه دی.

**مېوه** (mewá) ښځ.م. ۱) د ونو حاصلات چې خوړل کېږي؛ ۲) نتیجه؛ ۳) وچه کېږي مېوه.

**مېوه باب** (mewabā́b) ښځ.ج. مېوې داني.

**مېوه داني** (mewadānáy) ښځ.م. هغه لوښي چې مېوه په کې اېښودل کېږي.

**مېوه یي** (mewayí) نر.م.ج. د مېوې اړوند، مېوه لرونکی، مېوه دار، مثمر.

# ن

ن( nun ) نر.م. د پښتو الفبې اووه دېرشم توری، چې ابجدي ارزښت يې «۵۰» دی.

نا( nā ) ۱) مختاړی، د نفي علامه چې مثبت منفي کوي لکه جوړ – ناجوړ، روغ–ناروغ، سم– ناسم؛ ۲) ښځ.م. خوند، سليقه، ذوق، ادب، نزاکت.

ناباد ( nāabād ) ص. نر.م. شاړه، بنجر.

ناتر ( nāatar ) ص. نر.م.ج. بې خبره، ناخبره.

ناجرا ( nāǰrā ) ص. نر.م.ج. هغه چاريا هغه کار چې سرته نه وي رسېدلی.

نارامي ( nāarāmí ) ښځ.م. ناکراري، بدامني.

ناړ ( nāaṛ ) ص. نر.م. ۱) چې چا ته محتاج نه وي؛ ۲) بې اړې، بې اړتيا، بې نيازه، غيرمحتاج.

ناړتيا ( nāaṛtyā ) ښځ.م. بې نيازي، چا ته اړتيا نه لرنه.

ناړين ( nāaṛín ) نر.م. ناړين، بې اړتيا، غيرضروري، غيرلازم، بې ضرورته.

نازمايلی ( nāazmāyə́lay ) ص. نر.م. هغه چې ازمايل شوی نه وي، ناازمويلی.

نااستوگن ( nāastógən ) نر.م. نامېشت، نامېشتی، نامقيم، غيرمقيم.

نا اشنا ( nāašnā ) ص. نب. ۱) نابلد، ناخبره؛ ۲) عجيبه، حيرانوونکی.

نامني ( nāamní ) ښځ.م. بې امنه، غير محفوظ.

نا اميد ( nāumáyd ) ص. نر.م. نهيلی، مايوس، بې تمې.

نااميده ( nāumáyda ) ص. نب. ۱) هغه ښځه چې حامله نه وي؛ ۲) مايوس، مايوسه.

نااميدي ( nāumaydí ) ښځ.م. اميد نه لرنه.

نااودلی ( nāaudálay ) ص. نر.م. نامنظم، گډوډ.

نااهل ( nāahál ) نر.م. ص.ج. ناوړ، ناقابل، نالايق.

ناب ( nāb ) نر.م. ۱) حاکم، خليفه، امير، پاچا؛ ۲) نگه، سوچه، تنکی، ژنکی.

**ناباب** (nābā́b) ص. نر. م. ج. غیر مروج.

**نابالغ** (nābāl(ǵ)) ص. نر. م. ۱) هغه هلک چې بلوغ ته نه وي رسېدلی؛ ۲) بې تجربې.

**ناباوری** (nābāwə́ray) نر. م. ناویسا، خامباوری، بې باوره، شکمن، بې اعتماد.

**ناباوري** (nābāwə́ri) ښځ. م. ناویسایي، خامباوري بې باوري، بې اعتمادي.

**نابېر** (nābabə́r) ق. ناڅاپه، سمدلاسه، ناخبره.

**نابرابری** (nābarābaráy) نر. م. نابرابري، بې نیاوي، بېعدالتي.

**نابرخمن** (nābarxmə́n) نر. م. بې برخې، محروم.

**نابری** (nābaráy) نر. م. نابریالی، نابریال، ناکام، ناموفق.

**نابری** (nābaráy) نر. م. نابریالیتوب، نه بری، ناکامي.

**نابسیا** (nābasyā́) ښځ. م. نابسنده، ناکافي، بې قناعته.

**نابسیا ینه** (nābasyā-yəna) ښځ. م. نابسیاوالی، نه بسیاینه، نه کفایت، نه قناعت.

**نابشپړ تېرمهال** (nābašpaṛtermahā́l) نر. م. همېشني یا روږد تېرمهال، استمراري یا اعتیادي ماضي.

**نابشپړ کړ** (nābašpaṛkáṛ) نر. م. نامطلق یا استمراري کړ، استمراري ماضي.

**نابشپړ کړ ستاینوم** (nābašpaṛkaṛstāynū́m) نر. م. اوسمهال کړ ستاینوم (لکه څوځند)، حال فعلي صفت.

**نابشپړه همرنګي** (nābašpaṛahamrangī́) نیمګړې همرنګي (غړ پوهنه).

**نابلد** (nābalád) ص. نر. م. نا اشنا، ناخبره.

**نابود** (nābū́d) ص. نر. م. بې ګټې، خراب، عبث، بې کاره، چټې، برباد، ضایع.

**نابودول** (nābūdawə́l) مص مت. بې کاره کول، خرابول، بربادول، ضایع کول.

**نابودي** (nābū́di) ښځ. م. خرابي، وراني.

**نابودېدل** (nābūdedə́l) مص. ل. خرابېدل، بربادېدل، بې کاره کېدل، ورانېدل.

**نابوم** (nābū́m) ص. نر. م. نابلد، نوبلد، نابومه.

**نابینا** (nābinā́) ص. نب. ړوند، بې سترګو.

**ناپازی** (nāpāzáy) نر. م. بې پازې، نامسوول، غیرمسوول.

**ناپاک** (nāpā́k) ص. نر. م. چټل، پلیت، ناولی، خیرن.

**ناپاکتوب** (nāpāktób) نر. م. ناپاکتیا، ناپاکي، پلیتوالی، ګنده توب.

**ناپاللی** (nāpāləlay) نر. م. ناروزلی، ناپاللی.

**ناپام** (nāpā́m) نر. م. ناپامه، بې فکره، بې هوښه.

**ناپامور** (nāpāmwáṛ) نر. م. ج. د نه پاملرنې وړ، د نه توجه وړ، له پامه لوېدلی.

**ناپامي** (nāpāmí) ښځ. م. بې پامي، بې احتیاطي، بېباکي، بې پروایي.

**ناپای** (nāpā́y) نر. م. ج. ناپایه، بې بریده، کړنومی (مصدر).

**ناپای بریدی** (nāpāybríday) نر. م. بې حده، بې انتها، نامحدود، ناپایه.

**ناپای تېرمهال** (nāpāytermahā́l) نر. م. ناتېک یا ناجوت تېرمهال، نامعینه ماضي.

**ناپاینښته** (nāpāyašta) ښځ. م. نه پایېدونکې، بې دوام، موقت.

**ناپر** (nāpár) ص. ځواکمن، پیاوړی، قوي، صحتمند، خړیس، ناپر.

**ناپراند** (nāprā́nd) ص. نر. م. د بې زیات کمزوری، مړچین، تر اندازې زیات ستړی.

**ناپړیته** (nāpṛíta) ښځ.م. بې ځایه او بې وخته خبره، ناشولته، ناشوړته.

**ناپل** (nāpál) نر.م. ناپلی، ناروا، نابنبلی، نامشروع.

**ناپلوی** (nāpaləway) نر.م. ناپېیلی، بې پلوه، بې طرفه، غیرجانبدار.

**ناپلوي** (nāpalawí) ښځ.م. ناپېیلتوب، بې پلوي، بې طرفي، غیرجانبداري.

**ناپنځیز** (nāpanjíz) نر.م. ناطبیعي، غیرطبیعي.

**ناپوځي** (nāpawjí) ښځ.م. غیرنظامي، غیرپوځي.

**ناپوه** (nāpóh) نر.ښځ.م ۱) نه پوهېدونکی، جاهل ۲) ماشوم، نابالغ، صغیر.

**ناپوهنیز** (nāpohaníz) نر.م. ناعلمي، غیرعلمي.

**ناپوهي** (nāpohí) ښځ.م. ناپوهېدنه، جهالت.

**ناپېژندوی** (nāpežəndóy) نر.م. ناپېژندویه، ناپېژندګلو، نامشهور.

**ناپېیلتوب** (nāpeyaltób) نر.م. ناپېیلتیا، غیر منسلک، بې طرفه.

**ناپېیلی** (nāpeyálay) نر.م. ناتړلی، بې پلوه، غیرمنسلک (په بهرني سیاست کې).

**ناتار** (nātár) نر.م. ۱) زیاتی، ظلم؛ ۲) په مستو کې میده کړې ډوډۍ؛ ۳) یرغل، چپاو.

**ناتارځپلی** (nātārjapálay) نر.م. ناتار وهلی، غمځپلی.

**ناتارګر** (nātārgár) ص. نر.م. ظالم، جابر.

**ناتړوالی** (nātaṛwálay) نر.م. ناړوندي، ناهمبستګي.

**ناتکی** (nātakáy) نر.م. ایکي یو، بې جوړې، بهساري، بې بدله، بې همتا.

**ناټکی** (nāṭakáy) ښځ.م. صورت، شکل، شخصیت.

**ناتمام** (nātamā́m) ص. نر.م. نیمګړی، ناپوره.

**ناتوان** (nātwā́n) ص. نر.م. کمزوری، بې قوته.

**ناترمهال** (nātermahā́l) نر.م. اوسنی او راتلونکې زمانه.

**ناټ** (nāṭ) نر.م. شوق، لېوالتیا، محبت، مینه.

**ناټک** (nāṭák) نر.م. ۱) د سبیل ځای، تیاتر؛ ۲) ننداره، لوبه، ډرامه.

**ناټه** (nā́ṭa) ښځ.م. (ج. ناټې). هغه کوتره چې د سر بڼکې یا پښې یې سپینې وي.

**ناټی** (nā́ṭay) ص. نر.م. لټ، تنبل، بې سیکه.

**ناټۍ** (nāṭáy) ښځ.م. د لرګي غټکی مېخ چې د اوبښ په پوزه کې یې اچوي، نته.

**ناټیک پېژند** (nāṭikpežánd) نر.م. ناټیک پېژندویکی، نکره، حرف تعریف.

**ناټیک کړاوړون** (nāṭikkəṛawṛū́n) نر.م. بېدوده فعلي ګردان، نامنظم فعلي ګردان.

**ناټیک نوماړون** (nāṭiknūmāwṛū́n) نر.م. ناجوت نوم ګردان، بې قاعدې اسمي ګردان.

**ناټیکنومځری** (nāṭiknūmjáray) نر.م. ناجوت ضمیر، مبهم ضمیر.

**ناټیکه** (nāṭíka) ص. نب. ناارامه، پرېشانه.

**ناثر** (nāsír) ص. نر.م. نثر لیکونکی.

**ناجایز** (nājāyə́z) نر.م. ج. ناروا، نامناسب.

**ناجو** (nājū́) نر.م. د صنوبر ونه، د سرو ونه.

**ناجوړ** (nājóṛ) ص. نر.م. رنځور، ناروغ، بیمار.

**ناجه** (nājá) ښځ.م. (ج. ناجې) وروکې ځانګه.

**ناجي** (nājí) ص. نر.م. نجات ورکوونکی.

**ناچ** (nāč) نر.م. نڅا، ګډا، رقص، ناڅ.

**ناچاپ** (nāčā́p) نر.م. ناچاپ شوی، ناچاپي، لاسي، غیرمطبوع.

**ناچار** (nāčā́r) ص. نب. لاچار، عاجز، بې وسه.

**ناچل** (nāčál) ص. نر.م.ج. بې رواجه، کوټه سکه، له چلنده لوېدلې سکه.

**ناځوان** (nāǰwā́n) نـر.م. ناځـوانه، نامېـړه، بې مېړانې، بې شهامت.

**ناځواني** (nāǰwānī́) ښځ.م. نه مېړانه، نه شهامت، بې شهامتي.

**ناڅ** (nāc) نر.م. ګډا، نڅا، رقص.

**ناڅاپه** (nācā́pa) ق. سمدلاسه، نابېره، ناګهانه.

**ناڅپیز** (nācpī́z) نر.م. ناځايي، غيرځايي.

**ناڅخ** (nācáx) نر.م. نېزه، سانګه، ناڅخ.

**ناڅرګند** (nācargánd) نر.م. ناجوت، ناښکاره، نامشهور، غیرمرئي.

**ناڅښتنی** (nācaṣtə́nay) نر.م. بېدین، بې دینه، بې ګروهې، ناګروهن، دهري، ملحد.

**ناڅښتني** (nācaṣtənī́) ښـځ.م. بې دیني، بې ګروهي، دهریت، الحاد.

**ناڅګر** (nācgár) نر.م. ګډېدونکی، ناڅ کوونکی.

**ناڅل** (nācál) مص. ل. ګډېدل، نڅا کول.

**ناڅيز** (nācī́z) ص. بېکاره، بې فایدې، هېڅ شی.

**ناحق** (nāháq) ص. نـر.م. ۱) د حق خلاف؛ ۲) بې مناسبه، نامناسب؛ ۳) بې ګټې.

**ناحيه** (nāhiyá) ښځ.م ۱) سيمه، علاقه؛ ۲) ساحل د سمندر غاړه؛ ۳) طرف، اړخ، ډډه.

**ناخبره** (nāxabára) ص. نب. بې خبره، ناواقف.

**ناخجن** (nāxajə́n) نر.م. بې خجه، بې فشاره.

**ناخجنتيا** (nāxajəntyā́) ښـځ.م. بې خجـې، ناخجوالی، بې فشاري.

**ناخړوبېدونکی** (nāxaṛubedū́nkay) نـر.م. نه خړوبېدونکی، نه اوبېدونکی، نه اوبه کېدونکی.

**ناخواله** (nāxwā́la) ص. نر.م. نامناسب، سپکه او شرمناکه خبره، مسخره، زړه ماتی.

**ناخوالي** (nāxwālī́) ښځ.م. ۱) نامناسبتيا، بې سمونتوب؛ ۲) مجبوري؛ ۳) زړه توږېدنه.

**ناخوان** (nāxwā́n) ص. نر.م. بې تعليمه، په ليک لوست نه پوهېدونکی، بې سواده.

**ناخورا** (nāxurā́) ص.نر.م. چټل، ناولی، ناپاک.

**ناخوښه** (nāxwáṣa) ص. نب. خفه، غمګين.

**ناخوښی** (nāxwáṣay) نـر.م. ناخوښمن، مرور، زړه بدی، ناراضي.

**ناخوښي** (nāxwaṣī́) ښځ.م. ناخوښمني، مرورتيا، زړه بداوی، نارضايتي.

**ناخوندي** (nāxundī́) نامحـفوظ، نامصـئون، بې يمنه.

**ناخونديينه** (nāxundiyə́na) ښځ.م. نامصئونيت، نامحفوظوالی.

**ناخونه** (nāxū́na) ښځ.م. ۱) دانګورو په څېلي کې نری تار؛ ۲) دسترګو يو ډول ناروغي، نخـونه، کوکره، تراخم.

**نادار** (nādā́r) ص. نب. غريب، بې شتو، نېستمن.

**نادان** (nādā́n) ص. نر.م. کم عقل، ناپوه، ساده.

**نادر** (nādír) ص. نـر.م. ج. ۱) نایاب، کمیاب، ۲) ښه، غوره، عجيبه.

**نادرملی** (nādarmálay) ص.نر.م. نه درملېدونکی، نه رغېدونکی، لاعلاج.

**نادم** (nādím) ص. نر.م. پښېمان، ستومان.

**نادوده** (nādóda) ښـځ.م. بېـدوده، بې رواجه، بې نرخه.

**نادودې** (nādóde) ښځ.ج. و ګ. ناخوالي.

**نار** (nār) نر.م. ۱) اور؛ ۲) ص. نر.م. ورډی، نهار.

**ناراست** (nārā́st) ص. نـر.م. لټ، سست، ناتې، ناراسته، تمبل.

**ناراض** (nārā́z) ص.نر.م. خپه، مرور، ډډ، ناراضه.

**نارام** (nārā́m) ص. نر.م. ناراحت، بې ارامه، ارام نه لرونکی، ناوزګار.

**نارسی** (nārasáy) ص. نر. م. نارسېدلی، نه رسېدونکی، نیمګړی، لنډ، نابالغ.

**نارسي** (nārasí) ښځ. م. وروستووالی، وروسته پاتېوالی، نیمګړتیا، لنډوالی.

**نارسېدلی** (nārasedólay) نر. م. نارسی، نارسیده، لاس نه رسېدنه.

**نارښتینی** (nārıştínay) نر. م. ناریښتینی، ناسم، غلط، دروغجن، غیرواقعي.

**نارګېل** (nārgél) نر. م. ناریال، کوپره.

**نارنج** (nāránj) نر. م. یو ډول تریوه مېوه ده.

**نارنجي** (nāranjí) ص. نب. د نارنج غونډې رنګ لرونکی.

**نارنهور** (nārnahūr) نر. م. وری، نارنهار، نایېر.

**نارو** (nārū́) نر. م. یوه خطرناکه ناروغي ده؛ یو ډول چنګله دانه چې په منځ کې یې د تار غونډې نري چینجي وي، نارون.

**ناروا** (nārawā́) ص. نب. ناجایزه، نامناسب، د شرعې او مذهب خلاف.

**ناروزلی** (nārozálay) نر. م. ناروزل شوی، بې روزنې، ناتربیه.

**ناروږدی** (nāróẓday) نر. م. بې عمله، نامعتاد، نااهل، غیراهلي.

**ناروږدي** (nāroẓdí) ښځ. م. بې عملي، نامعتادي، نااهلي، غیراهلیتوب.

**ناروغ** (nāróğ) ص. نر. م ۱) رنځور، بیمار، ناساز؛ ۲) وران.

**ناروغتیا** (nāroğtyā́) ښځ. م. ناجوړي، رنځوري، ناروغي.

**ناروغتیایي** (nāroğtyāyí) ښځ. م. ناصحي، غیرصحي.

**نارون** (nārū́n) نر. م. و ګ. نارو.

**ناره** (nārá) ښځ. م. (ج. ناري) اواز، غږ، چیغه.

**ناری** (nāráy) نر. م. سبا ناری، ژرخوړی، ژرخوړي.

**ناریال** (nāryā́l) نر. م. کوپره، نارګېل.

**نارینتوب** (nārintób) نر. م. نرتوب، سړیتوب، مېړانه، زړورتیا، بهادري.

**نارینه** (nāriná) ص. نر. م. ۱) سړی؛ ۲) مېړنی.

**ناړ** (nāṛ) نر. م. ساقه، ډنډر، د غنمو یا اوربشو دروزه.

**ناړام** (nāṛā́m) ص. نر. م. مست، سرکښ؛ نارام.

**ناړک** (nāṛák) ص. نر. م. ۱) ناړیک، هغه غویی چې مات شوی نه وي او قولبه نه شي کولای؛ ۲) سرکښ، یاغي.

**ناړل** (nāṛál) مص. ل. د خره هینګېدل یا برړېدل.

**ناړن** (nāṛán) ص. نر. م. ۱) هغه څوک چې له خولې یې تل لاړې بهېږي؛ ۲) فا. نر. م. ج. و ګ. ناړل.

**ناړه** (nāṛá) ښځ. م. (ج. ناړې) ساقه، ډنډر.

**ناړی** (nāṛáy) ښځ. م. ج. ۱) له غرمنې جوړ شوی مزی چې ښه غځول شوی وي او شپانه پرې خپلې وتارې له پښو سره تړي؛ ۲) و ګ. ناړ.

**ناړي** (nāṛí) نر. م. ډنډر، غوړګه.

**ناړېجن** (nāṛeján) ص. نر. م. ناړن.

**ناز** (nāz) نر. م. ۱) ادا، نخره؛ ۲) مینه، محبت؛ ۳) وياړ، غرور، فخر؛ ٤) لويي، عزت.

**نازان** (nāzā́n) ص. نر. م. وياړونکی، نازکوونکی، فخر کوونکی.

**نازبو** (nāzbó) نر. م. ریحان، یو ډول بوټی دی چې د نازبو یا ببري په نامه یادېږي، کشمالی.

**نازبین** (nāzbín) نر. م. په ناز لوی شوی، نازپرور.

**نازبینتوب** (nāzbintúb) نر. م. په ناز لویېدنه، ناز کونه.

**نازغموړ** (nāzğamwóṛ) نر. م. ج. د نه زغم وړ، نه زغمېدونکی، نه تحمل کېدونکی.

نازک (nāzák) نـر.م. ۱) کـچه، تنکی، لطیـف؛ ۲) نرم؛ ۳) گران؛ ٤) تېز، توند؛ ٥) خطرناک.
نازک اندام (nāzakandā́m) ص. نـر.م. د نازکـو اندامونو لرونکی، نازک بدن.
نازکتوب (nāzaktób) نر.م. نازکېدنـه، نزاکت، نازکوالی، نازکي.
نازک مزاج (nāzakmızā́j) ص.نـر.م. ژر خـپه کېدونکی، بدخویه.
نازکي (nāzakí) ښځ.م. نازکـتیا، حسـاسوالی، باریکي، نزاکت.
نازل (nāzíl) ص. ۱) راکوزېدونکی، کښته راتلونکی؛ ۲) راکوز شوی، له پاسه کښته رالېږل شوی.
نازلول (nāzılawál) مص. مت. راکوزول، لـه بـره، له پاسه رالېږل، کښته را استول، واردول.
نازلېدل (nāzıledál) مص.ل. راکـوزېدل، لـه بره راتلل، واردېدل.
نازمن (nāzmán) ص.نـر.م. نازمنـد، نازولی، نازبین، محبوب.
نازمندي (nāzmandí) ښځ.م. نازولتوب، نازولتیا، نازبینتیا، محبوبیت.
نازنخره (nāznaxrá) ښځ.م. ناز و ادا.
نازنین (nāzanín) نر.م. ۱) نازکوونکی، نـازبین ۲) ښکلی، ښایسته؛ ۳) محبوب، معشوق.
نازول (nāzawál) مص. مت. په ناز ساتل، په ډېره مینه لوېول، له چا سره د ډېرې مینې اظهارول.
نازول (nāzawál) مص. مت. معـززول، عـزتمند کول، نازورکول.
نازولی (nāzawálay) ص.مف.نر.م. معزز کړی، پاللی، محترم کړی، نازورکړی.
نازولی (nāzawálay) نـر.م. نـازلـوېولی، په ناز لوی شوی، نازنین.

نازېدل (nāzedál) مص.ل. ۱) وياړل، فخـرکول، ناز کول؛ ۲) ناز و ادا کول، نخرې کول.
ناړه (nāẓá) ص. نر.م. نړه، خالص، سوچه.
ناساز (nasaz) ص. نـر.م. ۱) ناجوړ، رنځـور، ناروغ؛ ۲) ناموافق، مخالف، ناموزون.
ناسپاس (nāsıpā́s) نر.م. ناشکره.
ناسپړلی (nāspaṛálay) نـر.م. ناسپړل شـوی، ناکیندلی، ناغوړېدلی.
ناسپېڅلی (nāspecálay) نر.م. ناپاک، نامقدس، غیرمقدس.
ناست (nāst) ص. نر.م.ج. ۱) د ولاړ ضد.
ناستاینوړ (nāstāyanwáṛ) نـر.م.ج. چې د ستاینې وړ نه وي، غیرقابل ستایش.
ناستخونه (nāstxū́na) ښځ.م. د ناستې کوټه، صالون.
ناستوګنه (nāstógna) ښځ.م. نامېشته.
ناسته (nāstá) ښځ.م. ۱) د کېناسـتو حـالت؛ ۲) غونډه؛ ۳) تعلق، اړه؛ ٤) اودس ماتی.
ناسته پاسته (nā́stapā́sta) ښځ.م. راشه درشه، ناسته ولاړه، جګېدل، تیټېدل.
ناسره (nāsará) ص. نب. کوټه، ناچل، کلپ.
ناسکه (nāsaká) ص. نب. د سکه یا حقیقي ضد، د دوهمې مـور یا دوهم پلار اولاد چې لـومړی مقام و نه لري.
ناسکیندی (nāskindáy) نر.م. نه جبرانېدونکی، جبران نه منونکی.
ناسم (nāsám) ص. نر.م. د سم ضد، غلط، وران.
ناسمبال (nāsambā́l) نر.م. نامجهز، غیرمجهز.
ناسنت (nāsunát) ص. نـر.م. ۱) نا ختنه، شوېا، ښوېه؛ ۲) جاهل، شوېر.
ناسوب (nāsób) ص. نر.م. غیر حاضر، غایب.

**ناسوبانه** (nāsobāná) ښځ.م. پښي شا، پـه ناسوبتیا کې، غیابانه، غیابي.

**ناسوت** (nāsūt) نـر.م. ۱) عـام جسمونه، نـری؛ ۲) ځرگند عبادت، شریعت.

**ناسور** (nāsūr) نر.م. نه جوړېدونکی زخم یا ټپ.

**ناسولټ** (nāsolát) ص. نر.م. بدشکله، بې ډوله.

**ناسولي** (nāsolí) ښځ.م. بې عقلي، کم عـقلي، بې سولېن، ناسولیزوالی.

**ناسولیز** (nāsolíz) نر.م. نامعقول، غیرمنطقي.

**ناسهلی** (nāsahálay) نـر.م. ناهـضم، ناهضم شوی، ناسهند.

**ناسهند** (nāsahánd) نـر.م. نه هضمېدونکی، نه سهل کېدونکی، نه سهلېدونکی.

**ناسهنه** (nāsahána) ښځ.م. بې هضـمي، نس خوړي، بې زغمي.

**ناسي** (nāsí) ص. نب. بدبخت، تـریخ، شـوم، بد چانسه، بدطالع، بې ځایه، بې وخته.

**ناسیال** (nāsyál) نـر.م. نه سیال، بې سیالي، سپک ورک، بې غیرت.

**ناسیده** (nāsidá) ښځ.م. نامستقیم، کوږ.

**ناشاگرځی** (nāšāgarjáy) نر.م. نه پـه شا تلونکی، نه گرځېدونکی، نه راستنېدونکی.

**ناشپاتی** (nāšpatáy) ښځ.نښـپـاتی، د ناک ونې ته ورته خو تر ناک کوچنۍ مېـوه لـرونکی ونه او مېوه یې.

**ناشته** (nāštá) ښځ.م. زړ خوړی، سبانهاري.

**ناشر** (nāšír) نر.م. چاپوونکی، خپروونکی.

**ناشکري** (nāšukrí) ښځ.م. نا سپاسي.

**ناشناس** (nāšnās) ص. نر.م. نه پېژندونکی.

**ناشنیز** (nāšaníz) نـر.م. نه شـنل کـېدونکی، نه تحلیلېدونکی.

**ناشونتیا** (nāšuntyá) ښځ.م. نه کېدون، نه امکان.

**ناشونکی** (nāšúnkay) نـر.م. نه کـېدونکی، ناممکن، ناشونی.

**ناشونی** (nāšúnay) ص. نـر.م. نه کېدونکی.

**ناشي** (nāší) ص. نـر.م. ج. ۱) پیدا کـېدونکی، شروع کېدونکی؛ ۲) ځرگندېدونکی، ښکاره.

**ناښ** (nāṣ) نر.م. ۱) نښېن، لښه؛ ۲) داړه.

**ناښاخوړ** (nāṣācwáṛ) نر.م. ناویاړوړ، د نه افتخار وړ، ناقابل افتخار.

**ناښاد** (nāṣád) ص. نر.م. خپه، غمجن، غمځپلی.

**ناښمری** (nāṣmáray) نر.م. بې گټې، بې فایدې، بې ښېگنې، بې فضیلت.

**ناښنده** (nāṣánda) ص. نب. (ج. ناښندې) بې ځایه، نامناسب، ناموزون، نامعقول.

**ناښوونیز** (nāṣowaníz) نر.م. نه ورزده کېدونکی، غیراموزنده.

**ناصاف** (nāsáf) ص. نب. ناپاکه، خیرن، گنده.

**ناصح** (nāsíh) نر.م. ص. نصیحت کوونکی، واعظ.

**ناصر** (nāsír) ص. نر.م. مرسته کوونکی، حامي.

**ناطق** (nātíq) ص. نر.م ۱) خبرې کوونکی؛ ۲) عاقل ۳) کلک، ټینگ.

**ناظر** (nāzír) نـر.م. ۱) نظر کـوونکی، کتونکی؛ ۲) ساتونکی؛ ۳) ددفتر لاربنود؛ ٤) ایجرا.

**ناظره** (nāzirá) ښځ.م. ۱) د لیدو قوت؛ ۲) له مخې د قرآن شریف لوستنه.

**ناظم** (nāzím) نر.م (ج. ناظمان) ۱) نظم لیکوونکی ۲) انتظام کوونکی، د کارمشر؛ ۳) سکرتر.

**ناعلاج** (nāʿiláj) ص. نب. ۱) لادرملنې، لاعـلاج، ناعـلاجه؛ ۲) ناشونی، ناممکن.

**ناغ** (nāg) نر.م. ۱) لویې؛ ۲) مکېز؛ ۳) کورنی.

**ناغړن** (nāgaṛán) نر.م. بې غړه (غړېوهنه).

**ناغبرنتیا** (nāğazantyā́) ښـځ.م. بېغېرتوالی، ناغېرتوالی.
**ناغبری** (nāğázay) نر.م. بېغېره شوی.
**ناغس** (nāğás) ص.نر.م. ۱) خیرن، خچن، ناولی؛ ۲) کوټه، ناقص، کلپ.
**ناغښتلی** (nāğəṣtálay) ص.نـر.م. ۱) کچه تار چې تاوشوی نه وي، چې پرغېرلی نه وي، اومړی؛ ۲) ناپیاوړی، کمزوری، ناتوان، ضعیف.
**ناغورتیا** (nāğwartyā́) ښځ.م. ناښهانه، ناښمر، بدوالی، نه خوښونه.
**ناغوره** (nāğwára) ښځ.م. ناښه، بېکاره، ناکوکه، بد، ناوړه.
**ناغوړېدلی** (nāğwaṛedə́lay) نر.م. ناسپړلی، ناښیراز، بې ودې.
**ناغوښن** (nāğwaṣə́n) نـر.م. بې غوښې، ډنگر، خوار.
**ناغونډلیزترنګ** (nāğundlíztaṛáng) ناجمله يي ترنګ (ترکیب)، غیرجملوي ترکیب.
**ناغه** (nāğá) ښځ.م. ۱) ښکلی؛ ۲) جریمه، سزا، د عسل بدله؛ ۳) هغه تخم چې زرغون نه شي؛ ٤) د سترګو سره او نري رګونه؛ ٥) ناسوبتیا، غیرحاضري.
**ناغېړی** (nāğéṛay) نر.م. لټ، لټهور، سرغړول، سرزوری.
**ناغېړي** (nāğeṛí) ښځ.م. له کاره سترګې پټول، ناراستي، لټي.
**نافذ** (nāfíz) ص.نر.م. جاري شوی، صادر شوی.
**نافرمان** (nāfarmā́n) ص.نر.م. نه منونکی، باغي، سرکښ.
**نافرماني** (nāfarmānī́) ښځ.م. سرغـړاوی، سرکښي، بغاوت، تمرد.

**نافع** (nāfíʻ) ص.نب. ګټور، ګټه رسوونکی.
**نافه** (nāfá) ښځ.م. د مشکو ګنډه، د مشکو غوټه.
**ناقد** (nāqíd) ص.نـر.م. څوک چې د يوې موضوع يا ليکنې ښه او بد اړخونه په ګوته کوي.
**ناقرار** (nāqarā́r) ص.نب. بې قـراره، نا آرامه، سرګردانه، لالهانده.
**ناقص** (nāqís) ص.نر.م. ۱) نیمګړی، نامکمل؛ ۲) عیب لرونکی؛ ۳) ناسوچه، ناخالص.
**ناقل** (nāqíl) ص.نـر.م.ج. نقل کوونکی، روایت بیانوونکی، راوي، مهاجر.
**ناک** (nāk) نـر.م. ۱) یـوه ونـه او د هغې مېوه؛ ۲) وروستاړی لکه په مینه ناک.
**ناکاره** (nākā́ra) ص.نب. وران، خراب، بېکاره.
**ناکارېدلی** (nākāredə́lay) نر.م. نوی، ناکارول شوی، نامستعمل.
**ناکام** (nākā́m) نـر.م.ص. ۱) نامـراد، بې بري، پاتې؛ ۲) نر.م. مجبوري، بې وسي؛ ۳) هرومرو کېدونکی کار.
**ناکردې** (nākardé) ښځ.م. زیاتی، ناخوالې، ناسازې، ظلم، ناکړدې.
**ناکره** (nākará) ښځ.م. نامعیاري، غیرمعیاري.
**ناکس** (nākás) ص.نـر.م.ج. ۱) رذیل، لوچک؛ ۲) نادار، بې کسه، عاجز.
**ناکلال** (nākulā́l) ص.نر.م. نامناسبه، ناموزون، بې تهذیبه.
**ناکوړا** (nākuṛā́) نر.م. څوپاړی، د کالیو د مینځلو کوتک، دبی، تپنی.
**ناکوړه** (nākuṛá) ص.نب. بدشکله، بې ډوله.
**ناکه** (nāká) ښځ.م. ۱) نهنګ، لوی کب، د اوبو یو ځناور؛ ۲) د ویالې یا نهر د اوبو د بېلېدو ځای، ورخ؛ ۳) د واورې چنجی؛ ٤) يو ډول سمساره.

**ناګازه** (nāgā́ra) ص. نب. ځان ناخبره اچوونکی، منکر.

**ناګاري** (nāgārí) ښځ. م. ځان ناګاروڼه، عارفانه تجاهل.

**ناګټور** (nāgaṭawár) نر. م. ناسودمن، ناښمری، نایبیری، بې ګټې.

**ناګروهن** (nāgrohán) نر. م. بې ګروهې، بې عقیدې، غیرمعتقد.

**ناګمانه** (nāgumā́na) ص. ق. ناخبره، بې خبره، ناڅاپه؛ ناګومانه.

**ناګڼلی** (nāgaṇálay) ص. نر. م. بې قدره، سپک.

**ناګه** (nāgá) ښځ. م. ۱) کرو، کودیل، نهنګ؛ ۲) د واورو چینجی؛ ۳) یو ډول سمساره.

**ناګهانه** (nāgahā́na) ق. ناڅاپه، نابېره، دفعتاً.

**نال** (nāl) نر. م. ۱) د نیالګیو کېنول؛ ۲) ص. کرلی شوی؛ ۳) دجوارې هغه پیني چې د پړ مالک یې له جوارګرو څخه حاصلوي؛ ٤) داسونو نعل؛ ۵) تپي تپي، ژوبل ژوبل.

**نالان** (nālā́n) ص. نر. م. ژړېدونکی، فریادي، سرګردان، ګیله من، خبېنلی.

**نالایق** (nālāyaq) ص. نر. م. ۱) ناپوه، ناقابل، جاهل ۲) کمینه، رذیل.

**نالبکی** (nālbakáy) نر. م. غاب، قاب، بشقاب.

**نالت** (nālát) نر. م. سرکوزی، خنزیر، بدڅناور.

**نالوستوړ** (nālwástwaṛ) نر. م. ج. د نه لوستو وړ، د نه لوستو قابل.

**نالوستی** (nālwástay) نر. م. بې لیک لوسته، نالیک لوسته، بېسواد.

**نالول** (nālawál) مص. مت. ۱) کرل، د بوټو کېنول؛ ۲) د آس، کچر، خراو نورو په نوکونوکې نالونه ټک وهل ۳) تپي کول، ژوبلول.

**ناله** (nālá) ښځ. م. له غره څخه د رابهېدونکو اوبو لاره، غریېزه ویاله یا لښتی.

**نالی** (nāláy) ښځ. م. ۱) د باران یا ګنده اوبو د تللو لاره؛ ۲) نیلي، نالي، توشکه.

**نالېږند** (nālezánd) نر. م. نالېږدوړ، لازمي فعل، نامعقول.

**نالېږندکړ** (nālezandkáṛ) نر. م. لازمي کړ، لازمي فعل.

**نام** (nām) نر. م. نوم، نامه.

**نام بدي** (nāmbadí) ښځ. م. سپکاوی، خرابوالی، بدوالی.

**نامت** (nāmát) ص. نر. م. ۱) تری تم، ښخ وتلی؛ ۲) نر. م. اراده، عزم، قصد، نیت.

**نامتو** (nāmtū́) ص. نب. ۱) نامور، نوموړی، مشهور؛ ۲) تورزن، تکړه.

**نامحدود** (nāmahdū́d) ص. نر. م. ج. بې اندازې بې حده.

**نامحرم** (nāmahrám) ص. نر. م. پردی سړی، هغه سړی چې د ښځې نکاح ورسره روا وي.

**نامدار** (nāmdā́r) ص. نر. م. نوموړی، نامور، نامتو.

**نامراد** (nāmurā́d) ص. نر. م. ناکام، بدمرغه، بد نصیبه.

**نامربوط** (nāmarbū́t) ص. نر. م. نا اړوند، بې ربطه، ناتړلی.

**نامرتب** (nāmuratáb) ص. نر. م. بې ترتیبه، ګډوډ.

**نامرد** (nāmárd) ص. ۱) ایجړا؛ ۲) بې غیرته.

**نامزد** (nāmzád) نر. م. ۱) منسوب، تړلی، موسوم، نوملی؛ ۲) ټاکلی، مقرر.

**نامشروع** (nāmašrúʿ) ص. نب. ناروا، ناجایز، منع، د شرعي خلاف.

**نامطبوع** (nāmatbū́ʿ) ص. نب. ناخوښ، ناګواره.

**نامطلوب** (nāmatlūb) ص. نر.م. چې اړتیا ورته نه وي، چې غوښتنه یې نه کېږي.

**نامعقول** (nāmaṣqūl) ص. نر.م.ج. له عقل سره سمون نه خوړونکی، دعقل مخالف.

**نامعلوم** (nāmaṣlūm) ص. نر.م.ج. هغه شی یا هغه کس چې پته یې نه لګېږي، ورک.

**نامکمل** (nāmukamál) ص. نر.م. نیمګړی.

**ناملموس** (nāmalmūs) ص. نر.م. نالمسه، نامسح، چې لاس نه شي وروړل کېدای، د لامسې له قوت نه لوړ.

**ناممکن** (nāmumkín) ص. نر.م. ناشونی، هغه کار چې د کېدو امکان یې نه وي.

**نامناسب** (nāmunāsíb) ص.نر.م.ج. ناموزون، بې ځایه، سمون نه خوړونکی.

**نامنلی** (nāmanálay) ص. نر.م. ناګنلی، رد، ناقبول.

**ناموزون** (nāmawzūn) ص. نر.م.ج. نامناسب.

**ناموس** (nāmūs) نر.م. عزت، ننګ، غیرت، ابرو.

**ناموندی** (nāmūnday) ق. ناموندونی، نادر، نایاب.

**نامهالی** (nāmahālay) نر.م. بې وخته، بې موقع.

**نامي** (nāmí) ص. نر.م. نامتو، نامور، مېړنی.

**نامینځلی** (nāminǰálay) نر.م. ناوللی، ناولی، ناپرېوللی، ناپاک.

**نانا** (nāná) ښځ.م. وېلنی، نعناع، پودینه.

**نانځکه** (nānǰáka) ښځ.م. ګوډۍ، لینځکه، ناولی، نېنځکه، ناوکۍ.

**نانډرۍ** (nāndráy) ښځ.م.ج. د ښځو د خولې جنګ.

**ناندریز** (nāndríz) نر.م.ج. شخړیز، لانجه یي، متنازع فیه.

**نانډول** (nānḍwál) نر.م. ناانډول، نانډوله، بې تعادله، نامتوازن.

**نانډوله** (nānḍwála) ښځ.م. ناسازه، ناپېریته، نامناسب.

**نانغوتان** (nānğotán) ص. نر.م. نه منونکی، نه اورېدونکی.

**نانغوړی** (nānğoẓay) نر.م. نانغتان، تورغوړی.

**نانغوړي** (nānğoẓí) ښځ.م. تورغوړي، نانغتاني.

**نانګه** (nāngá) نر.م. یو غرنی بوټی دی چې د الوبالو په څېر مېوه لري. انانګه

**نانه** (nāná) ښځ.م. نینه، د جوارو یا غنمو وریته کړې دانه.

**نانی** (nānáy) نر.م. ۱) وړوکی، ښکلی؛ ۲) خود غرض، مطلب اشنا.

**نانیدی** (nāníday) ص.نر.م. ناجوتي، ناغاړه وتی، چې په یېوه یا سپرلی رووړدی نه وي.

**نانیسا** (nānisá) ښځ.م. بې زړه، ډارن، بې جرئت، کم جرأت.

**نانیسایي** (nānisāyí) ښځ.م. بې زړه توب، ډارنتیا، بې جرئتي، کم جرئتي.

**نانۍ** (nāṇáy) ښځ.م. د غوا، غويي له خرمنې نه جوړ کړی مزی یا پړی.

**ناو** (nāw) نر.م. د غره په منځ کې لښتی، ناله.

**ناوا** (nāwá) نر.م. نو، نم، لوندوالی، زېم.

**ناوخته** (nāwáxta) ق. له ټاکلي وخت نه وروسته کېدل، ناوختېدل.

**ناوړلی** (nāoḍálay) نر.م. نااوړلی، بې اوړنې، ګډوډ، بې ترتیب.

**ناوړوني** (nāoḍūní) ښځ.م. بې اوړوني، ګډوډي.

**ناور** (nāwár) نر.م. نور، ولاړې اوبه، ډنډ.

**ناورین** (nāwrín) نر.م. غم، خپګان، ماتم، وير.

**ناورین څپلی** (nāwrínǰapálay) نر.م. ناورین وهلی، غمڅپلی.
**ناوړتوب** (nāwaṛtób) نر.م. سمون نه خوړنه، جواز نه لرنه، ناوړتیا، ناوړه.
**ناوړونی** (nāwṛúnay) نر.م. نا اوړېدونی، نه گردانېدونکی، غیر تصریفي.
**ناوړوني ژبه** (nāwṛūnežába) ښځ.م. ناوړېدوني ژبه، بې گردانه (بې تصریفه) ژبه.
**ناوړه** (nāwáṛa) ص.نب. نامناسب، ناجایز، ناوړی.
**ناوسه** (nāwása) ص. نب. اړ، بې وسه، مجبور.
**ناوکۍ** (nāwakáy) ښځ.م. و گ. نانځکه.
**ناوگړیز کړ** (nāwagaṛízkáṛ) نر.م. هغه کړ چې بې کړند وکړي (فاعل و مفعول) گردانېږي.
**ناول** (nāwál) نر.م. یوه اوږده لیکلې شوې کیسه.
**ناوللی** (nāwlálay) ص. نر.م. نامینځلی، ناپرېولی، ناولی، ناپاک.
**ناولی** (nāwálay) ص. نر.م. ۱) خیرن، ناپاک؛ ۲) بدشکله؛ ۳) بدعمله، بدکرداره.
**ناوه** (nāwá) ښځ.م. پرناله، چې د کوټو له بامونو څخه د باران اوبه لاندې په کې راځي یا بهېږي.
**ناوې** (nāwe) ښځ.م. د واده پېغله، عروس.
**ناویات** (nāwyāt) ص.نر.ج. لږ پیدا، نادر، کمیاب، چې لږ پیدا کېږي.
**ناویسا** (nāwisā) ښځ.م. ناباوري، شکمن، بې باوره.
**ناویسایي** (nāwisāyí) ښځ.م. ناباوري، شکمنتیا، بې باورتوب.
**ناوېشلی** (nāwešálay) نر.م. ناوېشل شوی، نابېل شوی.
**ناوېشوړ** (nāwešwáṛ) نر.م.ج. نه وېشل کېدونکی، ناقابل تقسیم.
**ناهوار** (nāhawā́r) ص. نر.م. لوړ ژوړ، کندې کپرې.
**ناهوسا** (nāhosā́) ص. نب. ستړی ستومانه.
**ناهوسایي** (nāhosāyí) ښځ.م. نارامي، ناکراري، بېقراري.
**نایب** (nāyáb) ص.نر.م. مرستیال، معاون.
**نایک** (nāyák) نر.م. سردار، ښه، خان، مالک.
**نایي** (nāyí) نر.م. ډم، سلمان، گلابي.
**نایېنه** (nāyaṇa) ښځ.م. سلمانی، نایي، ډمه.
**نبات** (nabā́t) نر.م. ۱) بوټی، وابښه، شینکی؛ ۲) نر.م.ج. لمبوټ، د شکرې قند.
**نباض** (nabā́z) ص. نر.م. ۱) د نبض کتونکی یا پوهېدونکی؛ ۲) هوښیار، ولس پېژندونکی.
**نبض** (nabz) نر.م. د ورغوي یا لاس کتنه.
**نبوت** (nabūwát) نر.م. پیغمبري، رسالت.
**نبوغ** (nubūǧ) نر.م. استعداد، قریحه.
**نبوي** (nabawí) ص.نب. نبي ته منسوب، د پیغمبر سره نسبت لرونکی.
**نبي** (nabí) نر.م. دخدای پاک استازی.
**نتار** (natā́r) نر.م. (ج. نتارونه) ناتار.
**نتریکه** (natṛíka) ښځ.م. تناکه، پولۍ.
**نتکۍ** (natkáy) ښځ.م. کوچنۍ نت یا نته، د پوزې یوه گاڼه ده.
**نتل** (natál) مص. مت. مهارول، وهل، تکول، زیونبول.
**نتلی** (natálay) ص.نر.م ۱) وهل شوی، ډبول شوی؛ ۲) سپېره، بدبخت؛ ۳) خپه، غمجن.
**نته** (náta) ښځ.م. ۱) پېزوان، نتکۍ، د پوزې پسول؛ ۲) داوښ په سپږمو کې اچول کېدونکی کوچنۍ لرگی.
**نتیالی** (natyāláy) ص.ښځ.م. د نتکۍ مېرمن، د نتې مېرمن، د پېزوان مېرمن.

**نتیجه** (natijá) ښځ. م. (ج. نتیجې) حاصل، پای، میوه، ثمره، پایله.

**نټ** (naṭ) نر.م. ۱) مداري، جادوګر؛ ۲) دوکه باز، ټګ؛ ۳) ص. بې آرامه، ناقراره؛ ٤) سخت تاو، تودوخه.

**نټوی** (naṭawáy) نر.م. لاټو، څرخیندک.

**نټه** (naṭa) ښځ. م. له کاره سرغړونه، انکار کول.

**نثار** (nisār) ص. ۱) جار، قربان؛ ۲) مین، عاشق؛ ۳) ص. نر.م. د نثر لیکونکی.

**نثر** (násar) نر.م. ۱) هغه عبارت چې منظوم نه وي؛ ۲) ص. ګډوډ، خپوروور، دانه وانه.

**نجابت** (nijābát) نر.م. شرافت، پاکي، صفایي.

**نجات** (nijāt) نر.م. خلاصي، خپلواکي، آزادي.

**نجار** (najā́r) نر.م. ترکاڼ.

**نجاست** (nijāsát) نر.م. چټلي، پلیتي، ناپاکي.

**نجتل** (njatál) مص. مت. ۱) ورتېومبل، وردننه کول؛ ۲) ټینګ نیول؛ ۳) لګول لکه منګولې.

**نجس** (najás) ص. نر.م. ج. پلیت، مردار، ناولی.

**نجل** (njal) ښځ.م ۱) نجلۍ، جینۍ؛ ۲) هغه جینۍ چې کوژدن یې شوې وي.

**نجلکۍ** (njalkáy) ښځ.م. نجلۍ، جینۍ، جلکۍ.

**نجلۍ** (njaláy) ښځ.م. جلۍ، جلکۍ، جینکۍ.

**نجوم** (nujūm) نر.م. ۱) ستوري؛ ۲) د ستورو د ګرځېدو د څرنګوالي معلومونه.

**نجیب** (najīb) ص. نر.م. شریف، اصیل، لوی.

**نڅا** (nacā́) ښځ.م. ګډا، رقص، ډانس.

**نڅاګر** (nacāgár) ص.نر.م. نڅاند، ګډېدونکی، څرخبانی، ډم، یامګر.

**نڅاګري** (nacāgarí) ښځ.م. ګډا، نڅا، څرخباني، یامګري.

**نڅل** (nacál) مص.ل. ګډېدل، نڅېدل، رقص کول.

**نڅوړ** (nacóṛ) نر.م. ګوښه، لنډیز، خلاصه. ..

**نڅول** (nacawál) مص. مت. ګډول، نڅول.

**نڅی** (nacáy) ښځ.م. ډمه، ګډېدونکې.

**نڅېدل** (nacedál) مص. ل. ګډېدل، رقصېدل.

**نحس** (nahus) ص.نر.م.ج. ۱) سپېره، بدبخت، منحوس؛ ۲) سمون نه خوړونکی، ناموافق.

**نحوه** (náhwa) ښځ.م. ۱) طریقه، چل؛ ۲) د کلام د ترتیب د اصولو علم.

**نحوست** (nahūsát) نر.م. بدمرغي، بدمرغي.

**نخ** (nax) نر.م. ۱) اومه وربښم؛ ۲) د وربښمو تار؛ ۳) مانجه؛ ٤) څپلی، تونکی.

**نخاس** (naxā́s) نر.م. د څارویو د خرڅلاو بازار.

**نخاش** (naxā́š) نر.م. د لنده بل، نګولي، د لړلو او اچولو آله، څمڅه.

**نختېزل** (naxtezál) مص. مت. نچوړول، د مینځلیو کالیو څخه د اوبو ویستل، پرغبړل، نښتبېځل.

**نختۍ** (naxtáy) ښځ.م. غم، بلا، مصیبت، سانحه.

**نخچه** (naxčá) ښځ.م. نقشه، نخشه.

**نخره** (naxrá) ښځ. م. ناز، ادا، غمزه.

**نخل** (náxal) نر.م. د کجورې ونه، کجوره.

**نخود** [1] (naxwád) نر.م. ج. چڼه، چڼې.

**نخود** [2] (naxwád) نر.م. د وزن واحد چې له ۱/۵ ګرامو سره برابر دی.

**نخودي** (naxūdí) ص. نب. د چڼو په څېر رنګ.

**نخوش** (naxúš) نر.م. د کبانو د نیولو کونډه، خنجک.

**نخولول** (naxolawál) مص. مت. د زړه په خوراک اخته کول، نولول، کړول، په نول اخته کول.

**نخولېدل** (nxuledál) مص.ل. زړه خوړل، پټ په پټه غم زغمل، نولېدل، کړېدل.

**نخونه** (naxuná) ښځ.م. د سترگو یوه ناروغي ده.
**نخوی** (naxáway) نر.م. د اورکاني، بکر، چقماق.
**نخي** (naxí) ص. نب. له مالوچو څخه جوړه ټکه.
**ندا** (nıdā́) ښځ.م. غږ، آواز.
**نداف** (nadā́f) نر.م. ډانډسي، ډانډس والا.
**ندامت** (nıdāmát) نر.م. پښېمانتیا، پښېماني.
**ندائیه** (nıdāayá) ښځ.م. هغه جمله چې په کې د ندا یانې چاته د آواز یا غږ توری وي.
**ندرت** (nıdrát) نر.م. ۱) کمیاب، کمی، ۲) ښه والی، غوره توب، نا آشنا توب.
**ندرور** (ndror) ښځ.م. د مېړه خور.
**ندیم** (nadím) ص نر.م. ملگری، مصاحب.
**ندی** (nadə́y) ښځ.م. سیندگی، خوړ، لویه ویاله.
**ندی** (nadáy) نر.م. ۱) زېږم، سبب، لوند. الی، نم؛ ۲) کوچنی سیند، رود.
**نذر** (názar) نر.م. (ج. نذرونه) ۱) منښته، صدقه، نیاز؛ ۲) ډالۍ، تحفه، نذرانه.
**نذرانه** (nazrāná) ښځ.م. و گ. نذر.
**نذیر** (nazir) ص. نر.م. وېروونکی، د آخرت په وېره کې وراچوونکی، د حضرت محمد (ص) لقب.
**نر** (nar) ص. نر.م. د ښځینه مقابل جنس، مذکر؛ تورزن.
**نرتوب** (nartób) نر.م. مېړنتوب.
**نرخ** (narx) نر.م. بیعه، قیمت؛ ولسي قانون.
**نرخنامه** (narxnāmá) ښځ.م. د نرخونو ټاکلو لېست، د نرخونو د بیعو ټاکلو لېست.
**نرخوښ** (narxóṣ) نر.م. و گ. نخوښ.
**نرس** (nars) نر.م ۱) د ډاکټر مرستیال؛ ۲) دایي.
**نرسنگ** (narsíng) نر.م. د نرس وظیفه او دنده.
**نرسوی** (narsáway) نر.م. ۱) یو ډول غرنی انار؛ ۲) د انار پوټکی؛ ۳) لمر سېځلی، لمر وهلی.
**نرښځک** (narṣəǰák) ص. ایجړا، ملوتی، نرښځی.
**نرغزی** (narğázay) نر.م. یو ډول الوتونکی مرغه دی چې د شولو په فصل کې گرځي.
**نرغوښ** (narğóṣ) نر.م. و گ. نخوښ.
**نرک** (narák) نر.م. ۱) د گېډې شاته رگ؛ ۲) هغه دانه چې په تناسلي آلې کې راخېژي.
**نرکچور** (narkačū́r) نر.م. ج. ۱) یو ډول بوټی چې دارو ترې جوړېږي؛ ۲) ص. دوکه باز.
**نرکش** (narkáš) نر.م. نرکښ، هوسی، نرکښ، لکشوه.
**نرکښ** (narkáṣ) نر.م. سېږه، سیگه.
**نرکی** (narákay) نر.م. ۱) د دوو غرونو ترمنځ د لوړوالي کړلېچ؛ ۲) کوتل، غاښې؛ ۳) ډېر نری؛ ٤) ص. و گ. نروکی.
**نرگته** (nargáta) ص. ښځ.م. نرگوته، نرښځی.
**نرگس** (nargís) نر.م. ج. یو ډول گل دی.
**نرگس بیمار** (nargísıbımā́r) نر.م. ۱) مستې او مخمورې سترگې؛ ۲) د معشوقې سترگې.
**نرگس شهلا** (nargís šahlā́) نر.م. د نرگس د گل یو ډول چې منځ یې توروي.
**نرگسی**[1] (nargısáy) نر.م. ۱) د نرگس په شېر؛ ۳) یو ډول توکر.
**نرگسی**[2] (nargasáy) نر.م. هغه ځاروي چې د گلې یا پادې په سر کې روان وي، سرکښ، مخکښ.
**نرگسی** (nargasáy) ښځ.م. ج. و گ. نرگوس.
**نرگوړان** (nargūṛā́n) نر.م. گازره.
**نرگوس** (nargū́s) نر.م. نرگوسه، ننگروسه، د انار ونه، یو ډول غرنیز انار.
**نرگوښ** (nargū́ṣ) نر.م. د ماهیانو د نیولو کونډه، چنگک.
**نرگه** (nárga) ښځ.م. عامه مرینه، وبا.

**نرلوخ** (narlúx) نر.م. بډه ګال، بډ ګ، د لوخو ګل.

**نرم** (narm) ص.نر.م. ۱) پوست؛ ۲) خوږین، اوبږی؛ ۳) آسان؛ ٤) نازک؛ ٥) سست؛ ٦) بردبار.

**نرم تالو** (naramtālū́) نر.م. پوست تالو، ژبی.

**نرم تالوییز** (naramtālūyíz) نر.م.ج. ژبی ییز، پوست تالوییز، وروستی تالوییز.

**نرمچ** (narmáč) نر.م. خرمګس، غوباړی، بګڼ.

**نرم زړی** (naramzáṛay) ص. نر.م. نـری زړی، زړه سواند، مهربان، لوراند.

**نرم زړي** (naramzáṛi) ص.نر.ج. زړه سـواندي، لورینتوب، مهرباني.

**نرم ژبی** (naramžábay) ص.نر.م. ۱) پوست ژبی، نرم غږی. ۲) اخلاقي.

**نرم ژبي** (naramžábi) ص.نر.ج. ۱) پوست ژبي، نرم غږي؛ ۲) اخلاقیتوب.

**نرمول** (narmawə́l) مص. مت. ۱) پسـتول؛ ۲) خـوږینول؛ ۳) اسـانول؛ ٤) نازک جوړول؛ ٥) سستول؛ ٦) متحمل کول.

**نرمه** (narmá) ښځ.م. د غوږ پوځکی، نرمی.

**نرمي** (narmí) ښځ.م. دنرمېدو حالت، نرموالی.

**نرمېدل** (narmedə́l) مص. ل ۱) پستېدل؛ ۲) اوبږی کېدل؛ ۳) اسانېدل؛ ٤) نازک کېدل؛ ٥) بردبـار کېدل.

**نروب** (narób) ص.نر.م. نرم، رقیق، اوبلن، اوبزن.

**نروچکی** (naróčkay) ص.نر.م. نـروڅکی، نریچی، نری، نری نروچکی، نروکی، کمزوری، نازک.

**نروز** (naróz) ص. نر.م. نری، نروکی، نازک.

**نروکی** (narū́kay) ص.نر.م. ډېر نری، نری نروچکی، نری نروڅکی، ستړی، کمزوری.

**نره** (nárá) ص. ښځ.م. ۱) تکړه، تورزنه، مېړنی؛ ۲) ښځ.م. ډنهر، د نباتاتو ډنهر.

**نری** (naráy) ص. ښځ.م.ج. نری، نری توب.

**نری اوبه** (narayobá) ښځ.م. لـږې اوبه، روانې اوبه، باریکې اوبه.

**نری اوډډ** (narayawḍáḍ) زیر و بم، غور.

**نری باران** (naraybarā́n) نر.م. میده باران.

**نری توب** (naraytób) نر.م. باریکتوب، نازکتوب.

**نری تورې** (naráytore) ص. ښځې نری.

**نری رنځ** (narayrā́nǰ) نر.م. دسل مرض، توبرکلوز.

**نریز** (naríz) ص.نر.م. نر ته منسبوب.

**نری زړی** (nárayzáṛay) ص. نـر.م. زړ؛ سواند، نرم زړی، مهربان، لوراند.

**نرینه** (narína) ص.نر.م.ج. نر ته منسوب.

**نری ورځ** (naraywrā́ǰ) نـر.م. یو ډول باد چې د لوېدیځ له لوري لګېږي.

**نری نروچکی** (naráynarúčkay) ص. نـری پری، ډېر نری، ښځې نری.

**نړ** (naṛ) نر.م. د جریب ربع، د جریب څلورمه برخه.

**نړا** (naṛā́) ښځ.م. د خره اواز، د خره هنګا.

**نړانده** (naṛā́nda) ښځ.م. وران کنډر، نړېدلی ځای.

**نړاو** (naṛā́w) نر.م. څلور کناله ځمکه، یو جرېب.

**نړګ** (naṛág) نر.م. خراب، ویران، بیابان.

**نړل** (naṛə́l) مـص.ل. ۱) رمبـاړه، نـړا؛ ۲) د خـره هنګېدل.

**نړول** (naṛawə́l) مـص.مـت. ورانـول، له بېخـه ویستل، ړنګول.

**نړی** (naṛáy) ښځ.م. جهان، دنیا.

**نړی پنځی** (naṛáypánǰay) ص.نر.م. نړی پیدا کوونکی، جهان آفرین، خالق.

**نړیخور** (naṛixór) نـر.م.ج. نـړی خـوړونکی، جهانخور.

**نړېدل** (naṛedə́l) مص. ل. ویجاړېدل؛ وګ. نړل.

**نړۍ سوز** (naṛəysóz) نر.م. نړۍ سوځوونکی، جهانسوز.

**نړۍ ښود** (naṛəyṣód) نر.م.ج. جهانښود، نړۍ وین، جهان نما.

**نړۍ ګرځی** (naṛəygárǰay) نر.م.ج. ګرځندوی، سیلاني، نړۍ ګرځېدونکی.

**نړۍ لید** (naṛəylíd) نر.م. جهان بیني.

**نړۍ لیدلی** (naṛə́ylidálay) نر.م. ازمایښتکار، تجربه کار، جهاندیده.

**نړۍ لیدیز** (naṛəylidíz) نر.م. د نړۍ لید اړوند، د جهان بیني اړوند.

**نړۍ نیوی** (naṛəyníway) نر.م. نړۍ نیوونکی، سوبمن، فاتح.

**نړۍ نیوی** (naṛəyniwáy) نر.م. نړۍ نیونه، جهانګیري.

**نړیواک** (naṛəywā́k) نر.م. د نړۍ واکمن، جهاندار.

**نړیواکي** (naṛəywākí) ښځ.م. نړۍ واکمني، جهان واکمني، جهانداري.

**نړیوال** (naṛəywā́l) نر.م.ج. جهاني، بین المللي.

**نړیوال پولي صندوق** (naṛə́ywālpolísandóq) نر.م. نړیوال بانک، وجهي بین المللي صندوق، عالمي بانک.

**نړیوالتوب** (naṛə́ywāltób) نر.م. نړیوالي، نړیواله، جهانشمولیت.

**نړیواله** (naṛə́ywā́la) ښځ.م. جهانواله، جهاني، اصالت، بین المللیت.

**نړیواله بښنه** (naṛə́ywālābaṣə́na) ښځ.م. د نړۍ والي بخښنې سازمان، امنستي انتر نېشنل.

**نړیواله ټولنه** (naṛə́ywālaṭolə́na) ښځ.م. جهاني ټولنه، جامعه، ملل.

**نړیوېزونه** (naṛiwezū́na) ښځ.م. هغه ویونه چې په یوه مانا د نړۍ په ژبو کې د نړیوالو پور وییونو په توګه کارېږي.

**نزار** (nazā́r) ص. نر.م. ضعیف، کمزوری، مانده.

**نزاع** (nızā́ʕ) ښځ.م. پسات، جنګ، جګړه.

**نزاکت** (nızākát) نر.م. باریکي.

**نزامت** (nızāmát) نر.م. پاکوالی، سترهګي، پاکي.

**نزد** (nazd) ص. نر.م. ۱) نږدې، جوخت، ترخوا، قریب؛ ۲) خیال، رأی.

**نزدو** (nazdó) ص. نب. و ګ. نژدې.

**نزدېکت** (nızdekát) نر.م ۱) جوختوالی، نژدېوالی، قربت، ۲) تعلق.

**نزدې** (nızdé) ص. نب. نژدې، جوخت.

**نزړه** (názṛə) نر.م. و ګ. ننزره.

**نزله** (nazlá) ښځ.م. یو ډول زکام، د نزلې ناروغي.

**نزول** (nuzū́l) نر.م. ۱) نازلېدنه، لهبره کښته راتلنه ۲) د سترګو اوبه؛ ۳) سرکاري ځمکه.

**نزهت** (nuzhát) نر.م. پاکوالی، تازه ګي؛ خوشالي.

**نزیل** (nazíl) ص. ۱) دمه کوونکی، قیام کوونکی؛ ۲) مېلمه، مسافر.

**نژاد** (nıžā́d) نر.م. نسل، نسب، خته، ذات، توکم.

**نژادپال** (nıžādpā́l) نر.م. توکمپالی، نسل پال، نژاد پرست.

**نژادپالنه** (nıžādpālə́na) ښځ.م. نژادواله، توکمواله، توکمپالنه، نژادي تبعیض.

**نژادپوهنه** (nıžādpohə́na) ښځ.م. توکمپوهنه، نژادپېژندنه، اتنولوژي.

**نژادي** (nıžādí) ص. نب. نژاد ته منسوب.

**نژدې** (nıždé) ق. لنډ، خواته، جوخت، ترخط، نږدې.

**نژدې پر نژدې** (nıždéparnıždé) لنډ پر لنډه، ژر تر ژره.

**نژدېوالی** (naždéwālay) نـر.م. نـږدېوالی، نږدېتوب، نژدېکت، قرابت.

**نږل** (naẓə́l) مص. ل. ترنجی کول، اینږی کول، نږی کول، اینتروشی کول، پرنجی کول؛ نژل.

**نږور** (naẓór) ښځ.م. د زوی ښځه.

**نس** (nas) نر.م. ګېډه ځېټه، ګېډه.

**نساب** (nasā́b) نر.م. نسب پوه، د نسبنامو پوه.

**نساج** (nasā́j) نـر.م. ۱) کپړه اوبدونکی، جـولا؛ ۲) ص. دروغجن.

**نساجي** (nasājí) ښځ.م. د توکر اوبدلو کار، جولاتوب د نساجۍ صنعت، د نساجۍ فابریکه.

**نساوو** (nasāwū́) ص. نب. ډېر خوراک کوونکی، ګېډه ور، خېټو، ډېر خور.

**نسايي** (nısāyí) ښځ.م. ښځو ته منسوب.

**نسب** (nasáb) نر.م. خاندان، نژاد، ځته، ذات.

**نسبت** (nısbát) نـر.م. ۱) تـړون، ربـط، تعلق؛ ۲) مطابقت، برابري؛ ۳) کوژدن؛ ٤) بابت.

**نسبتاً** (nısbatán) ق. پـه نسبت، پـه مقـابله، پـه مطابقت، په پرتليز ډول.

**نسبتي** (nısbatí) ص. نب. نسبت لرونکی، رشته دار، خپلوان.

**نسبيت** (nasabyát) نـر.م. ۱) قـوميت، قـومواله، نسبت لرنه؛ ۲) د نسبيت تيوري.

**نسب نامه** (nasabnāmá) ښځ.م. قومي، لرۍ، د نسب سلسله، کورنۍ شجره.

**نسپال** (naspā́l) نر.م. دانا رېوتکی، نرسوی.

**نس پړس** (naspə́ṛs) ص. نر.م. نساوو، ګېډه ور.

**نست** (nast) ښځ.م. ۱) کونډه هندوه؛ ۲) ص. نر.م شوم، بخيل، کنجوس.

**نسترن** (nastarə́n) نـر.م. ج. يو ډول ښه بوی والا ګل چې د ګلابو په څېر پاڼې لري.

**نستعليق** (nastaʻlíq) نـر.م. يو ډول ځانګړی ښکلی ليک.

**نستول** (nıstawə́l) مص. مت. نابودول، ختمول.

**نستوڼی** (nastóṇay) ښځ.م. د کميس هغه برخه چې له لاسه چاپېره وي، لستوڼی.

**نستوځ** (nastáw-az) نر.م. بوغبند، هغه څادر يا دری چې بستره په کې تړل کېږي، بستره بند.

**نستېدل** (nastedə́l) مص. ل. نه مـوجـودېـدل، ختمېدل، پناکېدل، نېستېدل، بربادېدل.

**نسته** (násta) ص. نېست، نشته.

**نسج** (nasj) نـر.م. ۱) د عضـلاتو ډېـر کـوچنی جوړښت؛ ۲) نساجي، د توکر اوبدلو کار.

**نسخ** (nasx) نر.م ۱) ردول، منسوخېدنه؛ ۲) د ليک يو ځانګړی ډول يا رسم الخط.

**نس خشکي** (nasxuškí) نـر.م. د ګـېډې درد، پېچش، نس خوږي.

**نس خوږی** (nasxū́ẓay) نر.م. ۱) د ګـېډې درد، نس بـهی، نس ناسـته، پېچـش؛ ۲) لـوږه؛ ۳) ص. ګېډه ور.

**نسخه** (nusxá) ښځ.م. کتاب، رساله؛ ۲) هغه کاغذ چې ډاکټر درمل په کې ليکي؛ ۳) کاپي.

**نسر** [1] (nasr) نـر.م. د ټپوس په څېر يو مردار خور مارغه، ګنجي؛ ۲) د اسمان يو برج.

**نسر** [2] (nasár) نر.م. سېلاب راوړی خځله.

**نسرين** (nasrín) نر.م. يو ډول سپين ګل.

**نسق** (nasq) نر.م. دستور، ترتيب، انتظام.

**نسک** (nask) نر.م. ج. يو ډول دال.

**نسکور** (naskór) ص. نـر.م. پـرمخې، اپوته، اړولی.

**نسکورول** (naskorawə́l) مص. مت. ۱) اپوته کول، پرمخې کول؛ ۲) ورانول، تباه کول.

**نسکوره** (naskorá) ښځ.م. ۱) یو ډول لویه ونه ده، نسکوری؛ ۲) کبدي، پرځوني؛ ۳) د سیپۍ تنۍ چې د سینګار لپاره پزګربوان تک وهل کېږي.

**نسکورېدل** (naskoredə́l) مص.ل. ۱) اپوته کېدل، پرمخې کېدل؛ ۲) ورانېدل، تباه کېدل.

**نسکورۍ** (naskorə́y) ښځ.م.ج. و ګ. نسکوره.

**نسکیر** (naskír) نر.م ۱) نږدې، جوخت؛ ۲) خپلوان ، دوست، ملګری.

**نسکیرتوب** (naskirtób) نر.م. ۱) نږدېوالی، جوختوالی؛ ۲) خپلوي؛ ۳) اړیکې لرونکی.

**نسکیرول** (naskirawə́l) مص.مت ۱) نیږدې کول، جوختول، قریبول؛ ۲) دوست جوړول، خپلول.

**نسکیرېدل** (naskiredə́l) مص.ل. ۱) نیږدې کېدل، جوختېدل؛ ۲) خپلېدل، رشته دارکېدل.

**نسکینه** (naskína) ښځ.م. ۱) نسکو یا مسورو ته منسوب؛ ۲) له نسکو جوړه ډوډۍ یا بل څیز.

**نسګیر** (nasgír) نر.م. څوک چې قبض یا پېچ وي.

**نسل** (násəl) نر.م. اولاد، کورنۍ، ذات.

**نسلاً** (naslán) ق. په ذات، د نسل له اعتباره.

**نسل کشي** (nasəlkaší) ښځ.م. نسل زیاتونه، ذات خپرونه، نسل ګیري.

**نسلي** (naslí) ص. نب. ۱) نسل ته منسوب؛ ۲) نسل لرونکی، اصلي.

**نس ناس** (nasnás) نر.م. انسان ته ورته بیزو.

**نس ناسته** (nasnásta) ښځ.م. دستونه، اسهالونه.

**نسو** (nasú) ص. نب. ښځو، ګېډو، نسور.

**نسوار** (naswā́r) نر.ج. د تماکو او ایرو ګډه ماده ده چې د نشې لپاره په خوله کې اېښودل کېږي.

**نسواره** (naswārá) ښځ.م. یو ډول وره کشتۍ چې د سیل لپاره استعمالېږي.

**نسواري** (naswārí) نر.م. ۱) نسوار خرڅوونکی؛ ۲) نسوار استعمالوونکی؛ ۳) نسواري رنګ.

**نسوان** (naswā́n) ص. نر.م ۱) ښځنو، ګېډور، نسو؛ ۲) نر.ج. د نساء جمع، ښځې، ښځمنې.

**نسوت** (nıswát) ص. نر.م. ۱) سوچه، خالص؛ ۲) د یو ډول بوټی ښځ چې جلابو لپاره ښه دی.

**نسور** (nasawár) ص. نر.م. نسو، ښځو.

**نسی** (nasáy) نر.م. سوتلی، ژی، سوتری، مزی.

**نسیا** (nasyá) نر.م. پور، قرض، نسیه.

**نسیان** (nasyā́n) نر.م. ۱) هېره، تېروتنه؛ ۲) یوه ناروغي ده چې له انسان څخه تېرې شوې پېښې هېرې شي.

**نسیانی** (nasyānáy) ص. هېروونکی.

**نسیم** (nasím) نر.م. د سهار نرم باد و هوا.

**نسیه** (nasyá) ښځ.م. و ګ. نسیا.

**نشأت** (našát) نر.م. پیدایښت، نوی ژوند، پیدا کېدنه.

**نشاسته** (našāstá) ښځ.م. و ګ. نشایسته.

**نشاط** (nıšā́t) نر.م. خوشالي، ښادي، خوند.

**نشان** (nıšā́n) نر.م. ۱) ښان، نښه، علامت، اثر؛ ۲) داغ؛ ٤) درک، پته؛ ٥) د پله نښه.

**نشانه** (nıšāná) ښځ.م. د توپک ښانه، هدف.

**نشاني** (nıšāní) ښځ.م. یادګار، نشان، نښه.

**نشایسته** (našāyastá) ښځ.م. یو ډول سپینه ماده ده چې له غنمو او کچالو څخه لاس ته راځي.

**نشت** (našt) ص. نر.م. ۱) نشته، هیڅ، هېڅنا، ورک؛ ۲) حقیر، سپک، ذلیل؛ ۳) نر.م. و ګ. نشتوالی.

**نشت اړخ** (naštaṛx) نر.م. منفي (فعلي) وجهه.

**نشت اوړون** (nəštawṛū́n) نر.م. د نفي (فعلي) ګردان، د نفي (فعلي) تصریف.
**نشتاند** (nəštánd) نر.م. منفي باف، مخالف، له هر څه منکر.
**نشتاندي** (nəštāndí) ښځ.م. نشتاند والی، منفي بافي، نهیلیزم.
**نشت پېر** (naštpér) نر.م. د نفي حالت، د نامه نفي حالت.
**نشتر** (naštár) نر.م. ۱) دنښتر ونه؛ ۲) تېره څوکه لرونکی، د داني یا زخم څیرولو یوه آله.
**نشتمن** (naštmə́n) ص. نر.م. نېستمن، مفلس.
**نشتمني** (naštmaní) ښځ.م. نېستي، نېستمني، بېوزلي، تش لاسي.
**نشتوالی** (naštwā́lay) نر.م. معدوم کېدنه، نابود کېدنه، ورک کېدنه، تنګ لاسي.
**نشتوکی** (naštū́kay) نر.م. شوم، کنجوس.
**نشتول** (naštawə́l) مص. مت. معدوم کول، فنا کول، ناموجود کول.
**نشتویکی** (naštwayíkay) نر.م. د نفي یا نهي ویکی یا ادات.
**نشتېدل** (naštedə́l) مص. ل. معدوم کېدل، ورک کېدل، ناموجود کېدل، فنا کېدل.
**نشر** (nášər) نر.م ۱) خپور، خپورشوی؛ ۲) خپرونه، اشاعت؛ ۳) له حشر سره په راتلو ژوندي کونه.
**نشرات** (našarā́t) نر.ج. خپروني.
**نشرول** (našrawə́l) مص. مت. خپرول، خوړول، نشر کول، شایع کول.
**نشریات** (našrıyā́t) نرج. د راډیو په ذریعه د اواز د خپرولو سلسله، براډکاستېنګ.
**نشریه** (našrıyá) ښځ.م. خپرونه، نشریات.
**نشرېدل** (našredə́l) مص. ل. خپرېدل، شایع کېدل.

**نشست** (na(ı)šást) نر.م. ګډې خبرې اترې، سره کېناستنه، ناسته.
**نشمه** (našmá) ښځ.م. ناز، ادا، نخره، غمزه.
**نشمي** (našmí) ص. نب. ناز و ادا کوونکی.
**نشمېدل** (našmedə́l) مص. ل. ناز و ادا کول، نخرې کول.
**نشو** (našu) ښځ.نر.م. غتېدنه، لوېدنه.
**نشوونما** (našunamā́) ښځ.م. راختنه او لویېدنه، راټوکېدنه او غتېدنه، وده او غتېدنه.
**نشوي** (našawí) ص.نر.م. ۱) نشې ته منسوب؛ ۲) نشه راوستونکې، نشه آور، نشه يي.
**نشه** (našá) ص. ښځ.م ۱) سرور، مستي، بې هوښي ۲) غرور، کبر، لویي، خودبیني.
**نشه اور** (našaāwə́r) ص. نب. نشه راوستونکی، نشه يي، نشه کوونکی.
**نشه باب** (našabā́b) نر.م. نېشه يي توکي، نېشه يي څېزونه.
**نشه باز** (našabā́z) ص. نر.م. نشه کوونکی، نشه يي څیزونه استعمالوونکی، نشه يي.
**نشه يي** (našayí) ص. نب. و.ګ. نشايي.
**نشېب و فراز** (našebufarā́z) نر.م. لوړه ژوره، لوړوالی او ژوروالی، تېټ او جګ.
**نښان** (nıṣā́n) نر.م. و.ګ. نشان.
**نښپوهنه** (naṣpohána) ښځ.م. د نښو (علامتونو) پوهنه، نماد شناسي، سیمولوژي.
**نښت** (naṣát) نر.م. نښتنه، سره یو کېدنه، نښتون، نښتیا، نښته، بندوالی، ناوزګاري، بوختوالی.
**نښتر** (naṣtár) نر.م. نشتر، د صنوبر ونه.
**نښتل** (naṣtál) مص.ل. نښلېدل؛ ۱) سره یو کېدل؛ لښېدل؛ ۲) راایسارېدل؛ ۳) شروع کېدل، لاس پورې کېدل؛ ٤) جګړه کول، لاس لګول.

نښتوب (nșțób) نر.م. ۱)نښتېدنه، څېښېدنه؛ ۲)تور، مخکښته، ښېدنګ.
نښتون (nșatū́n) نر.م. و.ګ. نښت.
نښته (nșáta) ښځ.م. ۱)و.ګ. نښت؛ ۲)جنګ، جګړه.
نښتېځل (naștejál) مص. مت. نچوړول، نخوړول، څېښېدل، له یوه شي په زوره اوبه ایستل، نښځل.
نښتېدل (nșatedál) مص.مت. و.ګ. نښتېځل.
نښرغاند (nașragā́nd) نر.م. نښه جوړوونکی، سمبول جوړوونکی، نماد ګر.
نښرغاونه (nașragāwána) ښځ.م. نښه جوړونه، سمبول جوړونه، رمز سازي.
نښک (nașák) نر.م. هغه کونده چې له دېګچې او کړهې نه غوښه پرې را ایستل کېږي.
نښلول (nașlawál) مص.مت. ۱)سره یو ځای کول، سولېول؛ ۲)را ایسارول؛ ۳)اپیل کول، لاس پورې کول؛ ٤)جنګول.
نښلېدل (nașledál) مص. ل. و.ګ. نښتل.
نښنی (nașánay) ص. نر.م. بد، ناکاره، خوشې.
نښه (náșa) ښځ.م ۱)و.ګ. نښان؛ ۲)نشانه، هدف، په توپک باندې د ویشتو علامه.
نښه نښان (náșanıșā́n) نر.م. نوم ونښان، نوم و نشان.
نښه ییز (nașayíz) نر.م. اشاري، علامتي.
نښه ییزول (nașayizawál) مص. مت. علامتي کول، اشاري کول.
نص (nas) نر.م. ۱)د سامان قط په قط اېښودل؛ ۲)د یوې خبرې سپیناوی؛ ۳)صفت، صریح او واضحه (حکم، کلام، حدیث، آیت).
نصاب (nısā́b) نر.م ۱)پانګه، هغه مال چې زکات ورکول ورباندې واجب وي؛ ۲)د ښوونځي لپاره مقرر کړی شوی کتابونه؛ ۳)کتنه، اندازه.
نصایح (nasā́yih) نر.ج. نېکې مشورې، نصیحتونه.
نصب (nasb) ص. نر.م. ۱)ولاړ، ودرېدلی، لګ، لګېدلی، قایم؛ ۲)زور، زبر.
نصب العین (nasbulșáyn) نر.م ۱)اصل مطلب، مقصد؛ ۲)اصول، لار، کرښلاره.
نصبول (nasbawál) مص.مت. ۱)ودرول، لګول، لکول، قایمول؛ ۲)مقررول.
نصبېدل (nasbedál) مص. ل. ودرېدل، لګېدل، قایمېدل، مقررېدل.
نصر (nasr) نر.م. ۱)ملګرتیا، مرسته؛ ۲)سوبه، ګټه، بری.
نصرت (nasrát) نر.م. ۱)سوبه، فتح؛ ۲)مدد، ملګرتیا، مرسته.
نصف (nısf) ص. نب. نیم، نیمایي، دویمه برخه.
نصوح (nusū́h) ص. نب. ۱)سوچه، خالص؛ ۲)پخه توبه ایستونکی، نصوحا.
نصوص (nusū́s) نر.ج. و.ګ. نص.
نصیب (nasíb) نر.ج. ۱)قسمت، تقدیر، برخه، نصیبه؛ ۲)حصه؛ ۳)حاصل.
نصیبور (nasibawár) ص. نر.م. ښه نصیب لرونکی، نصیبي، بختور.
نصیحت (nasihát) نر.م. نېکه مشوره، پند.
نصیر (nasír) نر.م ۱)مرسته کوونکی؛ ۲)ملګری، دوست.
نطاق (natā́q) نر.م. خبرې کوونکی، ویاند، ویندوی.
نطفه (nutfá) ښځ.م. منې، د انسان تخمه چې اولاد ترې پیدا کېږي؛ ۲)اولاد.
نطفه حرام (nutfaharā́m) ښځ.م. ناجایزه اولاد.
نطق (nutq) نر.م. ۱)د خبرو یا وینا قوت، د ویلو قوت، ۲)خبره، وینا؛ ۳)مننلیک.

**نظارت** (nızārat) نـر.م. ۱)کتنه، پام کـونه؛ ۲)ساتنه، نگهباني؛ ۳)د ناظر دنده.

**نظاره** (nızāra) ښځ.م. ۱)ليدنه، ؛ ۲) ننداره.

**نظافت** (nızāfat) نر.م. صفايي، پاکوالی، پاکي.

**نظام** (nızām) نر.م. ۱) انتظام؛ ۲) ترتيب؛ ۳)د مرغلرو لړ؛ ٤)جرړه؛ ٥)طريقه، چل.

**نظامي** (nızāmí) ص.نب. پوځي، د پوځ يا لښکر انتظام کوونکی يا ناظم.

**نظر** (nazár) نر.م ۱)د ليدو قوت، بصارت، بينايي؛ ۲)کتنه، ليدنه؛ ۳)غور، فکر؛ ٤)نگراني.

**نظرباز** (nazarbāz) ص. نـر.م. ۱)بد نظر لرونکی؛ ۲)نظر اچـوونکی؛ ۳)خـلک پېـژندونکی، چالاک.

**نظربند** (nazarbánd) ص. نر.م. هغه څوک چې تر څارنې لاندې وي.

**نظربندي** (nazarbandí) ښځ.م. ۱)په نگـرانی کې ساتنه؛ ۲)د جادو عمل، جادوگري.

**نظرثاني** (nzərsāní) ښـځ.م. د اصلاح لپاره بيا کتنه، اصلاح کونه.

**نظرمات** (nazarmāt) نر.م. هغه کنجکه يا چيـړه چې له بدو سترگو د بچ ساتلو لپاره د کوچنيانو په غاړه کې تړل کېږي

**نظرماتی** (nazarmātay) نر.م.د نظر ماتولو عمل؛ د سپېلنو لـوگی کـول، دم کول، صدقه؛ نظـر رچ.

**نظروچ** (nazarwač) نر.م. و گ. نظرماتی.

**نظري** (nazarí) ص. نب. ۱)لـه نظره شـوی؛ ۲)له نظره غور څېدلی؛ ۳)ناقص؛ ٥)هغـه علم چې د موجوداتو په تصور بحث په کې کېږي.

**نظرياتي** (nazaryātí) ص.نب. نظريو يا نظرياتو ته منسوب.

**نظريه** (nazaryá) ښځ.م. هغه مسأله چې غـور او فکر نه په کې کار واخيستل شي، اصول.

**نظم** (názam) نر.م. ۱)بندوبست، انتظام، نظام؛ ۲)موزون کلام، شعر.

**نظم ونسق** (názmnuásq) نـر.م. بندوبست، انتظام.

**نظير** (nazír) نر.م ۱) مثال، نمونه؛ ۲) دلويو عدالتو پرېکړه چې د کښتنو عدالتونو لپاره دليل وي.

**نظيف** (nazíf) ص. نر.م. پاک، حلال.

**نعت** (naʂt) نر.م، ۱)ستاينه، مدحه؛ ۲)د حضرت محمد (ص) په شان کې د ستاينې شعرونه.

**نعتيه** (naʂtıyá) ص.نب. نعت ته منسوب.

**نعره** (naʂrá) ښځ.م. و گ. ناره.

**نعش** (naʂš) نر.م. لاش، مړی، جسد.

**نعل** (naʂl) نر.م.و گ. نال.

**نعلبکی** (naʂlbakáy) نر.م. و گ. نالبکی.

**نعلبند** (naʂlbánd) نر.م. و گ. نالبند.

**نعم البدل** (naʂmulbadál) نر.م. ښه بدله، نېکه معاوضه، غوريز، عوض.

**نعمت** (nıʂmát) نر.م. مال، دولت، خوندور شيان، انعام، پېرزوينه، د الله تعالی ورکړه.

**نعيم** (naʂím) نـر.م. ۱)نعمت، مـال؛ ۲)نېکي؛ ۳)لاس رسېدنه؛ ٤)صفت، نعمت لرونکی.

**نغارچي** (naǧārčí) ص. نغـاره وهـونکی، نغاره غږوونکی، ډنډورچي.

**نغاره** (naǧārá) ښځ.م. ډنډوره، ډمامه.

**نغاړل** (nǧāṛál) مص. مت. و گ. نغښتل.

**نغاړی** (nǧāṛə́y) ښځ.م. منجيله، نغوړی.

**نغامه** (naǧā́ma) ښځ.م. و گ. مغاند.

**نغت** (naǧát) نر.م. راگرمونه، راپارونه، تحريک، لمسونه، لمسون، نغته، نغوته، اشاره.

**نغتان** (naǧatā́n) ص. نر.م. منونکی، اورېدونکی، غوږ نیوونکی، نغتاند، نغوتان، نغوتاند.

**نغد** (naǧd) نر.م. په لاس، د قرض ضد، تیار، موجود.

**نغدپرنغد** (náǧdparnáǧd) نر.م. نغده پر نغده، لاس پر لاس، نغدي.

**نغدول** (naǧdawə́l) مص.مت. پیسې په موقع تیارول، پیسې حاضرول، نغدې پیسې لاس ته راوستل.

**نغدي** (náǧde) ښځ.ج. حاضر رقم، موجودې پیسې، نغدیت.

**نغدېدل** (naǧdedə́l) مص.ل. پیسې په موقع حاضرېدل، پیسې لاس ته راتلل، کره کېدل.

**نغر** (nǧər) نر.م. نغرښت، نغرذ، نغړ: ۱) راکښنه، جذب کونه؛ ۲) ءېچونه، اپونه؛ ۳) زغمنه.

**نغرل** (nǧarə́l) مص.مت. نغرول، نغړدل، نغرتل: ۱) راکښل، جذب کول؛ ۲) لواړ خوړل، په یو وار له حلقه تېرول؛ ۳) زغمل او برداشت کول.

**نغری** (nǧaráy) نر.م. د اور بلولو ځای، د پخلي ځای، انغری، اور غالی.

**نغړاند** (nǧr̥ā́nd) نر.م. کتنه، څارنه، انتظار.

**نغړاندی** (nǧr̥ā́nday) ص. نر.م. کتونکی، انتظار کوونکی، څارونکی.

**نغړد** (nǧar̥d) ص.نر.م. چخنی، لتاړ، چارپلاخ.

**نغړدل** (nǧar̥də́l) مص. مت. و ګ. نغرل.

**نغړنزی** (nǧar̥anzáy) نر.م. جلغوزی، زنغوزی.

**نغښت** (nǧaṣ̌t) نر.م. ۱) راغونډونه، د نغښتلو عمل، نغشت؛ ۲) ص. تول، له ځرمه.

**نغښتل** (nǧaṣ̌tə́l) مص.مت. نغاړل، نغشتل: ۱) قط په قط راتول، راغونډول؛ ۲) لنډول.

**نغښتی** (nǧáṣ̌tay) ص. ۱) پخه کړې، قط په قط راغونډ، راتول؛ ۲) مختصر، لنډ.

**نغښی** (nǧaṣ̌áy) نر.م. وربل، کوڅۍ، کونځۍ.

**نغلاند** (naǧlā́nd) ص.نر.م. وږسترګی، اروا وږی؛ ۲) لېوال، مشتاق، غوښتونکی.

**نغم** (náǧəm) نر.م. ۱) الغم، سمڅه؛ ۲) غنم؛ ۳) د پښانو او زرګرانو بیاتي.

**نغمه** (naǧmá) ښځ.م. لوبه، سندره، ترانه.

**نغن** (nǧən) نر.م. د غنمو ډوډۍ، نغند.

**نغند**[1] (nǧand) نر.م. د غنمو ډوډۍ.

**نغند**[2] (naǧánd) نر.م. ضرر، اذیت، تکلیف.

**نغوتان** (nǧutā́n) ص. و ګ. نغتان.

**نغوتاند** (naǧutā́nd) ص.نر.م. نغوتان، منونکی، اورېدونکی.

**نغوتستاینوم** (naǧutstāynū́m) اشاري صفت.

**نغوتل** (nǧutə́l) مص.ل. ګرمول، راپارول.

**نغوته** (nǧúta) ښځ.م. و ګ. نغت.

**نغوره** (nǧóra) ښځ.م. ځوز، هغه اغزی چې اوښان یې خوري.

**نغوړ** (nǧor̥) نر.م. ناغه، جرمانه، د ملامتیا جرم.

**نغوړی** (nǧor̥áy) ښځ.م. و ګ. نغاړی.

**نغوږل** (nǧoẓ́ə́l) مص.مت. په غوږ سره اورېدل، غوږ ایښودل، په توجه سره اورېدل.

**نغوږمېچ** (nǧoẓméč́) نر.م. د اورېدا مېچ اله، شنوایي سنج.

**نغوږمېچنه** (nǧoẓmečána) ښځ.م. د اورېدا اندازه لګونه، شنوایي سنجي.

**نغوږوړتیا** (nǧoẓwar̥tyā́) ښځ.م. د اورېدا قابلیت.

**نغوږېدل** (nǧozedə́l) مص.ل. په غوږ سره اورېدل، غوږ ایښودلی کېدل.

**نغوښ** (naǧóṣ̌) نر.م. و ګ. نخوش.

**نغول** (nǧol) نر.م. د اوبو موری، د اوبو رو.

نفاذ (nıfāź) نر.م. ۱) جاري کېدنه؛ ۲) يو څيز له بل څيز نه وتنه.
نفاس (nıfās) نر.م. د کوچني تر زېږېدو وروسته تر څلوېښتو ورځو پورې له ښځې وينه راتلل.
نفاست (nıfāsát) نر.م. پاکوالی، ښه والی.
نفاق (nıfāq) نر.م. بې اتفاقي، عداوت، پټه دښمني.
نفت (nıft) نر.ج. دخاورو تېل، بنزين.
نفر (nafár) نر.م. کس، سړی، بنده.
نفرت (nafrát) نر.م. کرکه، ناخوښي، کراهت.
نفري (nafarí) ښځ.م. ۱) د کارکوونکو ډله، د مزدورانو ټولي؛ ۲) مزدوري، دیاړي.
نفرين (nafrín) نر.م. ښېرا، بده دوعا، غندنه.
نفس[1] (nafs) نر.م. ۱) ځان، روح، ذات، وجود؛ ۲) حقيقت، اصل؛ ۳) خلاصه؛ ٤) ذکر؛ ٥) بدن؛ ٦) د بدکار هيله.
نفس[2] (nafás) نر.م ۱) سا، دم؛ ۲) ساعت، لحظه.
نفساني (nafsāní) ص.نب. نفس ته منسوب.
نفس پرست (nafsparást) ص. نر.م. د نفس منونکی، عياش، نفس پالونکی.
نفعه (náfʿa) ښځ.م. د نقصان ضد، ګټه، فايده.
نفقه (nafaqá) ښځ.م. د کور خرڅه، دکورماته ګوده؛ د بال بچ خرڅه.
نفل (náfal) نر.م. ثوابي عبادت.
نفوذ (nofūź) نر.م. اغېز، اثر کونه، رسوخ.
نفور (nofūr) نر.م. نفرت کونه، کرکه کونه.
نفوس (nu(a)fūs) نر.م.ج. وګړي، کسان، ولس.
نفي (náfi) ښځ.م. د اثبات ضد، نه، انکار.
نفير (nafīr) ص. نر.م. ۱) نفرت کوونکی، متنفر؛ ۲) سرنا، سورنی، دروی؛ ٥) فرياد، ژړا.
نفيس (nafīs) ص. نر.م.ج. ښه، پاک، غوره.
نقاب (nıqāb) نر.م. د ښځو د مخ پټولو پرده، برقع.
نقاد (naqād) نر.م. تنقيد کوونکی، د يو شي د ښو بدو څرګندوونکی، کره کوونکی.
نقاره (naqārá) ښځ.م. وګ. نغاره.
نقاش (naqāš) نر.م. ۱) نقش و نګار جوړوونکی؛ ۲) انځورګر، مصور، آرټست.
نقاضت (naqāzát) نر.م. زره بداوی، خپګان.
نقال (naqāl) ص. نر.م. نقل کوونکی، پېښې ګر، نقلي، پېښې کوونکی، اېکټر، بګت باز.
نقاهت (naqāhát) نر.م. کمزورتيا، ناتواني، تر ناروغۍ وروسته د ښو کېدو پر لور د کمزورۍ دوره.
نقايص (naqāyís) نر.ج. عيبونه، نيمګړتياوې.
نقب (naqab) نر.م. نغم، نقم، هغه سوری چې د غلا لپاره د چا په دېوال کې وکړی شي.
نقد (naqd) نر.م. ۱) وګ. نغد؛ ۲) کتنه، کره کتنه، د يوه اثر د ښو او نيمګړو اړخونو څرګندونه.
نقرس (naqrís) نر.م. نقرص، يو ډول ناروغي ده.
نقره (nuqrá) ښځ.م. سپين زر، چاندي.
نقش (naqš) نر.م. ۱) صورت، انځور؛ ۲) مهر، ټاپه؛ ۳) نام و نښان؛ ٤) نښه؛ ٦) ګلکاري؛ ۷) اثر، اغېز؛ ۸) جادو، منتر، تونکه.
نقش زېرند (naqšzezánd) نر.م. نقش لوبوونکی، کردار لوبوونکی، اداکار، ننداره غاړی.
نقش زېرونه (naqšzezawána) ښځ.م. نقش جوړونه، نقش آفريني.
نقش لوبول (naqšlobawál) مص. مت. رول لوبول، پاټ لوبول، ونډه اخيستل، لوبه کول.
نقش لوبونه (naqšlobawána) ښځ.م. رول لوبونه، پاټ لوبونه، ونډه اخيستنه.
نقش ونګار (naqšwnıgār) نر.م. د ګلونو د جوړولو کار، ګلکاري، د قلم کارۍ کار.

**نقشه** (naqšá) ښځ.م. نخچه؛ ۱) تصویر، خاکه؛ ۲) شکل؛ ۳) کره وره؛ ٤) نمونه، مثال.

**نقص** (nuqs) نر.م. کمی، عیب، بدوالی، تاوان.

**نقصان** (nuqsān) نر.م. ۱) کمی، نقص، عیب؛ ۲) تاوان، زیان، خساره؛ ۳) بربادي.

**نقض** (naqz) نر.م. ماتونه، ماتېدنه، ورانی.

**نقطه** (nuqtá) ښځ.م. ټکی، صفر.

**نقل**[۱] (náqal) نر.م. ۱) له یوه ځایه بل ځای ته تلنه؛ ۲) له یوه کاغذ څخه بل ته اړونه؛ ۳) بېلګه؛ ٤) کیسه؛ ٦) پېښنه؛ ۷) لطیفه؛ ۸) کاپي.

**نقل**[۲] (núqul) نر.م.ج. یو ډول خواږه دي.

**نقل نویسي** (náqalnawisí) نر.م. د نقل لیکلو او یا کولو کار، منشي توب، محرري، نقلول.

**نقلول** (naqlawál) مص. مت. ۱) له یوه ځایه بل ځای ته لېږدېدل؛ ۲) له یوه کاغذ په بل کاغذ لیکل؛ ۳) حکایت کول، روایت کول.

**نقلي** (naqlí) ص. نر.ښځ.م. ۱) و.ګ. نقال؛ ۲) د اصلي ضد، جعلي.

**نقلیه** (naqlıyá) ص. نقل ته منسوب.

**نقلېدل** (naqledál) مص.ل. ۱) له یوه ځایه بل ځای ته تلل؛ ۲) له یوه کاغذه په بل کاغذ لیکل کېدل؛ ۳) حکایت کېدل، بیانېدل.

**نقي** (naqí) ص. ښځ.نر.م. پاک، سوچه، خالص.

**نقیب** (naqíb) ص.نر.م. ۱) د قوم مشر؛ ۲) تشهیر کوونکی؛ ٤) سپایونکی؛ ٥) چوبدار؛ ٦) شپېلی.

**نقیصه** (naqisá) ښځ.م. کمزوري، ناتواني.

**نکات** (nukát) نر.ج. ۱) باریکي؛ ۲) هغه خبرې چې هر څوک پرې نه پوهېږي.

**نکاح** (nıkāh) ښځ.م. له اسلامي شریعت سره سم د هلک او جلۍ تړون، واده، عقد.

**نکاحنامه** (nıkāhnāmá) نر.م. هغه کاغذ چې د نکاح د وخت فیصله پرې لیکل شوې وي.

**نکاس** (nıkās) نر.م. له کوره د بهر تلو لاره؛ ۲) د اوبو د بهیر د وتو لاره؛ ۳) لاره، طریقه.

**نکاسي** (nıkāsí) ښځ.م ۱) د مال و اسباب خرڅېدنه؛ ۲) لېږنه؛ ۳) له ښاره بهر تلنه؛ ٤) له چا نه روپې لاس ته راوړنه؛ ٥) د ځمکې محصول.

**نکبت** (nakbát) نر.م. غریبي، مفلسي، بدحالي.

**نکته** (nuktá) ښځ.م. ۱) باریکي؛ ۲) باریکه یا ژوره خبره؛ ۳) د آس د خولې څرم.

**نکته چین** (nuktačín) ص.نر.م. باریکي لټوونکی، نکتې راویستونکی، خامي راویستونکی.

**نکتایي** (nıktāyí) ښځ.م. د رخت پټی، چې په غاړه کې د کمیس له غاړې سره تړلی شي.

**نکریزې** (nakrízé) ښځ.ج. یو ډول بوټی او د هغه پاڼې چې لاسونه وربانديې سره کوي، حنا.

**نکری** (nakray) نر.م. یو ډول ناروغي، برص.

**نکړې نکړې** (nákṛenákṛe) نر.م. ټال متهول، آنې بانې، ډیل، ځنډ، انکار.

**نکل** (nákal) نر.م.و.ګ. نقل[۱].

**نکم** (nakām) نر.م. ناز، ادا، نخره، غمزه.

**نکیر** (nakír) نر.م. نکیر منکر په قبر کې له مړي سره سوال و ځواب کوونکې ملایکه.

**نګ** (nag) نر.م. ۱) منظم بند شوی یا تړل شوی غټ پنډ؛ ۲) غمی، نګین، جوهر.

**نګار** (nıgār) نر.م. ۱) انځور، نقش؛ ۲) بت؛ ۳) معشوق؛ ٤) سینګار؛ ٥) د نکریزو چاپ.

**نګارخانه** (nıgārxāná) ښځ.م. ۱) سینګارځی، آرایشګاه؛ ۲) د انځورونو ځای.

**نګاه** (nıgāh) ښځ.م. ۱) لیدنه، نظر؛ ۲) د لیدو قوت؛ ۳) سترګه؛ ٤) پام، توجه؛ ٦) ننداره.

**نګاهبان** (ngāhbān) ص. نـر.م. پام لـرونکی، ساتونکی، نګران، څوکیدار، محافظ.

**نګر** (nāgər) نر.م. کلی، قصبه، بلدیه، ښارګوټی.

**نګران** (nıgarān) ص.نر.م. کتونکی، پام کوونکی، ساتونکی، نګاهبان، محافظ.

**نګسی** (ngasáy) نر.م. څینې شیان.

**نګښی** (ngáṣáy) نر.م. څنې، د ښځو د تندي دواړو خـواو ته کـوڅې کـړې ویښـته؛ ۲) زرښت، بوډاتوب.

**نګوبی** (ngobáy) نر.م. د توري موټی یا لاستی، د زین د مخنۍ برخې لوړه څوکه.

**نګوری** (ngóray) ص. نر.م. ړوند، نابینا.

**نګوړی** (ngóṛay) نر.م. بادرنګ، تریوړی.

**نګوس** (ngos) نر.م. انځور، عکس، نګوښ.

**نګوښ** (ngoṣ) نر.م. د یوې پښې کار نه کونه، ګوډ ګوډ تلل، نګوښېدل.

**نګوښل** (ngoṣál) مص. ل. نګوښېدل.

**نګوښول** (nguṣawál) مص.مت. په یوه پښه ګوډول په یوه پښه معیوبول.

**نګوښېدل** (nguṣedál) مص.ل. په یوه پښه ګوډېدل، بېکاره کېدل، په یوه پښه معیوبېدل.

**نګولی** (ngūlay) نر.م. سالن، لندبل، کتغ.

**نګون** (nıgūn) ص. نـر.م. نسکور، سرچپه یا سر ښکته پښې پورته څوړند، اپوټه، نګونسار.

**نګه** (nagá) ص.نب. نړه، سوچه، پاک، خالص.

**نګهت** (nıghát) نر.م. د ګلونو بوی، خوشبویي.

**نګین** (nagín) نر.م. قیمتي کاڼی، غمی، نګینه.

**نل** (nal) نر.م. دورمه، دروه، نچه، نی، نیچه، کړکی؛ یوجګ نری بوټی چې د ګني په څېر بندونه لري.

**نلکه** (nalká) ښځ.م. ۱) له اوسپنې یا پلاستیک څخه جوړه نلۍ؛ ۲) د اوبو بمبه.

**نله** (nalá) ښځ.م. ۱) نلۍ؛ ۲) د پښې لوی هډوکی؛ ۳) شپېلۍ.

**نلۍ** (naláy) ښـځ.م. ۱) د کارتوسـو تـوقـه، قوله؛ ۲) د چلم نلۍ؛ ۳) لویه نیچه.

**نلی** (naláy) نر.م. ۱) د پښې یا لاس لـوی هډوکی؛ ۲) د هډوکي مغز.

**نم** (nam) نـر.م. ۱) لـوندوالی، رطوبت؛ ۲) حیا، لحاظ؛ ۳) لوند، تر.

**نمازي** (nmāzí) ص.نب. پاک، نمانځی، مائي.

**نماست** (nmāst) ص. نر.م. وګ. لماست.

**نماستل** (nmāstál) مص. مت. ملاستل، پرېوتل، غځېدل.

**نماک** (nmāk) اد. ډول، څېر، رنګ.

**نمانځل** (nmānǰál) مص.مت. وګ. لمانځل.

**نماړي ستن** (nmāṛistán) ښځ.م. وګ. د لماړي ستن، د نواړي ستن.

**نمایش** (namāyáš) نـر.م. ۱) ښودنه، خلکو ته ښکاره کونه، نمود؛ ۲) ننداره.

**نمایېدل** (nmāyedál) مص. ل. ښـکاره کـېدل، څرګندېدل، ښودلی کېدل.

**نمایان** (namāyān) ص. نر.م. ښـکاره، څـرګند؛ ۲) نوموړی، نامور، یاد.

**نمایندګي** (namāyandagí) ښـځ.م. استازواله، په یو ځای باندې موجودېدل، مقامي، څانګه.

**نماینده** (namāyandá) ص.نر.م. استازی، قایم مقام، نایب.

**نمائیل** (nmāíl) مص. مت. نبیل، اورول، ښودل.

**نمبر** (nambár) نر.م. شمېر، درجه، پېړه، وار.

**نمجن** (namjən) ص.نر.م. لوند، نمژن.

**نمڅی** (namcáy) نر.م. ۱) نیمڅی، لمڅی؛ ۲) یو مردارخور مارغه، کرګس، لمڅټ، لمچټ.

**نمد** (namád) نر.م. نمڅی، لینمڅی، دوړیو بستر.
**نمدبل** (namdabál) نر.م. لاوڼ، کتغ، نګولی.
**نمر** (nmar) نر.م. لمر، نور، مر.
**نمرپرست** (nmarparast) نر.م. ۱) و.ګ. لمرګلی؛ ۲) کافر، د لمر عبادت کوونکی.
**نمرپرېواته** (nmarprewātá) نر.م. د لمر پرېوتو خوا، قبله، مغرب، لوېديځ.
**نمرخاته** (nmarxātá) نر.م. ختيځ، شرق.
**نمرختيځ** (nmarxatíǯ) ص. نر.م. مشرقي، لمر خاته طرف.
**نمرګلی** (nmargwálay) و.ګ. لمرګلی.
**نمرمخی** (nmarmáxay) نر.م. لمررنګه، ښکلی، ښايسته، محبوب، معشوق، مين. افتابرخ.
**نمره** (numrá) ښځ.م. ګڼه، شمېره؛ و.ګ. نمبر.
**نمري** (nmarí) نر.ج. لباس، جامې، کپړې.
**نمرېيل** (nmareyál) مص. مت. لوښی مينځل.
**نمرينه** (nmarína) ښځ.م. د لوښو پاکول.
**نمړل** (nmaṛál) مص.ل. خمڅه کول، کپ کول.
**نمړۍ** (nmaṛə́y) ښځ.م. نوړۍ، مړۍ، لقمه.
**نمزدک** (nmazdák) نر.م. جومات، مسجد.
**نمژن** (namžán) نر.م. نمجن، نوژن، لوند.
**نمسی** (nmasáy) نر.م. لمسی.
**نمک** (namák) نر.م. ۱) مالګه؛ په دې مانا په پښتو کې نه کارېږي؛ ۲) رزق، خواړه.
**نمک حرام** (namakharā́m) ص.نر.م. ۱) حرام رزق خوړونکی؛ ۲) دچانېکي هېروونکی.
**نمک حلال** (namakhalā́l) ص.نر.م. ۱) حلال رزق خوړونکی؛ ۲) د چا احسان نه هېروونکی.
**نمک خوار** (namakxwā́r) ص. نر.م. ۱) دچا ډوډۍ ته ناست؛ ۲) د چا خواړه خوړونکي.
**نمکدان** (namakdā́n) نر.م. د مالګې لوښی.
**نمکين** (namakín) ص. نر.م. ۱) مالګين، تروشګون؛ په دې مانا په پښتو کې نه کارېږي؛ ۲) سکاب، ښکلی، ډولي.
**نمله** (namlá) ښځ.م. ځل، د آس پر زين لاندې توټه.
**نمنا** (namnā́) ښځ.م. بغاوت، نافرماني، سرغړونه.
**نمناک** (namnā́k) ص.نر.م.ج. نمجن، نمژن.
**نمنځ** (nmanǯ) نر.م. ۱) عزت، درناوی، احترام؛ ۲) نمانځنه، لمانځنه.
**نمنځل** (nmanǯál) مص. مت. لمانځل، نمانځل، عزت کول، درنول، درناوی کول.
**نمنځلی** (nmanǯálay) ص.نر.م. نمنځنی، معزز، محترم.
**نمو** (namó) ښځ.م. لويېدنه، توکېدنه، وده کونه.
**نمود** (namū́d) نر.م. ۱) څرګندېدنه؛ ۲) ښودنه.
**نمودار** (namūdā́r) ص.نر.م. ۱) څرګند، ښکاره؛ ۲) افسر، رهبر، ښکاره سړی، د نامه سړی.
**نموړل** (nmoṛál) مص. مت. مړل، تاوول.
**نموړه** (nmoṛá) ښځ.م. و.ګ. تومه.
**نموږل** (nmožál) مص. مت. ږمنځ کول، غمنځول.
**نمونځ** (nmūnǯ) نر.م. لمونځ، نماز، عبادت.
**نمونه** (nmūná) ص.نر.م. ۱) ساری، مثل، نظير؛ ۲) نقل، نقشه، قالب، نشانه، نښه.
**نمونيا** (namūnyā́) ښځ.م. د ناروغۍ په وخت کې د سږي سوروالی او پړسوب.
**نمي** (namí) ښځ.م. نمجن.
**نمېر** (namér) نر.م. ۱) يو ډول سور ګل؛ ۲) يو ډول غرنی بوټی چې ښه بوی لري.
**نميسل** (namisál) مص. مت. ۱) نموږل، مښل، مالش کول؛ ۲) نغښتل، تاوول.
**نن** (nan) ق. نن ورځ، نننۍ ورځ، موجوده ورځ.
**ننځره** (nanǯrá) نر.م. و.ګ. رنځره، نانځره.

**ننځکه** (nanǰáka) ښځ.م. نانځکه، ګوډۍ، لیزکه.
**نناپ** (nandā́p) نر.م. ډانسي، نداف، نداپ.
**نندارتون** (nandārtū́n) نر.م. نندارځی، نمایش ګاه، تماشا ګاه، دننداره کولو ځای.
**نندارځی** (nandārǰáy) نر.م. ننداري، نندارتون، نندارېځ.
**نندارچي** (nandārčí) نر.م. ننداره کوونکی.
**نندارغاړی** (nandārğā́ṛay) نر.م. ننندارکار، لوبغاړی، هنرلوبی، هنر پېشه.
**نندارغالی** (nandārğāl áy) نر.م. دننداري د ښودلو ځای.
**نندارکارانه** (nandārkārāná) ښځ.م. نمایشکارانه.
**نندارکړکۍ** (nandārkaṛkáy) ښځ.ج. نندارېځ، د ننداري کړکۍ.
**نندارلوبه** (nandārlóba) ښځ.م. تمثیلي ښوونه، تمثیلي ټوټه، تمثیلي پارچه.
**نندارلیک** (nandārlík) نر.م. ډرامه، ډرام، نمایشنامه.
**نندارلیکونکی** (nandārlikū́nkay) نر.م. ډرامه لیکونکی، نمایشنامه نویس.
**ننداره** (nandārá) ښځ.م. تماشا، نمایش.
**ننداري** (nandā́re) ښځ.ج. د (ننداره) د برګړی (جمع)، د ننداري ځای، د تمثیل ځای، نندارځی.
**نندارېز** (nandārī́z) نر.م. د ننداري اړوند، د ننداري وړ، تماشه يي.
**نندارېزول** (nandārizawə́l) مص. مت. د ډرامي په بڼه اړول، ډرامېز کول.
**نندرامی** (nandrāmáy) ښځ.م. کابلی روپی.
**نندرور** (nandrór) ښځ.م. ایندرور، د مېړه خور.
**نندرورزی** (nandrorzáy) نر.م. د نندرور زوی.

**نندره** (nandrá) ښځ.م. نیندره، هغه مرسته چې خلک یې له چا سره د واده په وخت کې کوي.
**نندیار** (nandyā́r) ښځ.م. نندرور، د خاوند خور.
**نندړه** (nandṛə́) نر.ج. و ګ. رنځړه.
**ننږور** (nanẓór) ښځ.م. نږور، د زوی ښځه، اینګور.
**ننږی** (nánẓay) نر.م. پرنجی، اینګی، انتوشی.
**نن سبا** (nansabā́) ق. نر.م. ۱) خبره ځندونه، ټالونه؛ ۲) حال او مستقبل.
**نن شپه** (nánšpa) ښځ.م. دغه شپه.
**ننکۍ** (nankáy) ښځ.م. چیچک، وړه دانه، ښنځکی.
**ننګ** (nang) نرم. غیرت، مېړانه، ابرو.
**ننګماړی** (nangmā́ṛay) نر.م. د ګتې او مسواکي ګوتې ترمنځ فاصله.
**ننګټۍ** (nangaṭáy) ښځ.م. یو ډول بوټی دی.
**ننګړی** (nangṛáy) نر.م. څنګه، اینګړی، انګی.
**ننګړی شپه** (nángṛayšpa) ښځ.م. نیمه شپه، د شپې نیمایي برخه.
**ننګښه** (nángaṣa) ښځ.م. رکن، ذمه وارکس، وکیل.
**ننګک** (nangák) نر.م. نړه، خالص، سوچه.
**ننګوړی** (nangū́ṛay) نر.م. ۱) انارګوړی؛ ۲) وړوکی انار، غرنی انار، تریو انار.
**ننګول** (nangawə́l) مص. مت. په غیرت راوستل، مرسته غوښتل، پېغور ورکول.
**ننګون** (nangū́n) نر.م. لنګون، لنګبدنه.
**ننګ ونام** (nangunā́m) نر.م. شرم، غیرت.
**ننګونه** (nangawána) ښځ.م. ۱) تومبنه، پارونه، احساساتي کونه.؛ ۲) پېغور ورکونه، په ننګ راوستنه.
**ننګه** (nánga) ښځ.م ۱) غیرت، مېړانه؛ ۲) ملاتړ، حمایت.

ننګی (nangáy) نر.م. ۱)ملګری، شاتړ، ملاتړ؛ ۲)لپه، ټوټه، قطره.

ننګیالی (nangyāláy) ص. نر.م. ننګیال، غیرتمند، ناموس ساتونکی، غیرتي.

ننګېدل (nangedə́l) مص.ل ۱)ننګ کول، غیرت کول؛ ۲) مص.مت. انګېرل، ګومان کول.

ننګېرل (nangerə́l) مص.ل. احساسول، حس کول، حسول.

ننګېرنه (nangerána) ښځ.م. ولوله، حس، احساس، محسوسونه، ادراک.

ننه ننه (nánanána) ق. په پټه پټه، په پرده کې.

ننېدل (nanedə́l) مص.ل. ۱)څخېدل؛ ۲)ننې کېدل.

ننی (nananáy) ص.نر.م. نن ورځ، تازه، نوی.

ننواتې (nanawāté) ښځ.م. ننواته، د چا کورته د بخښنې غوښتلو لپاره تلنه او بخښنه غوښتنه.

ننوب (nanób) نر.م. وګ. څخون.

ننوتځی (nənwatǰáy) نر.م. ننوتلاره، مدخل، دخولې.

ننوتل (nanawatə́l) مص.ل. داخلېدل، دننه تلل.

ننول (nanawə́l) مص.مت. ځاځکې ځاځکې څخول.

ننویستل (nanawistə́l) مص.مت. دننه کول، ننه ایستل.

ننه (nána) اد. د ننه، منځ کې، اېننه.

ننه باسل (nanabāsə́l) مص.مت. دننه کول، ابسته کول، ننه ایستل، منل، ورمنل.

ننېدل (nandedə́l) مص.ل. نینېدل، صاف کېدل، ځاځکې څخېدل.

نو[1] (no) ق. د شرط توری، بیا.

نو[2] (naw) نر.م. نم، لمدبل، نمي؛ ۲)زوه.

نو[3] (nū) نر.م. نوم، ناف.

نوا (nawā́) ښځ.م. ۱)اواز، غږ؛ ۲)کوک، راګ، نغمه؛ ۳)ساز و سامان؛ ٤)خوشالي.

نواب (nawā́b) نر.م. ۱)نایب، د یوې سیمې حاکم؛ ۲)د هر لوی ځمکوال؛ ۳)د عزت خطاب.

نواحي (nawā̆hí) ص. ښځ.م. ګرچاپېره سیمه.

نواخت (nawā́xt) ص.نر.م. لایق، وړ، جوګه.

نوار (nawā́r) نر.م. ۱)پټه، هغه پلنه فیته چې کټونه او پالنګونه پرې اوبدل کېږي؛ ۲)هغه ځای چې دواړه غاړې یې لوړې او منځ یې ژور وي، په سمه کې خوړګی وزمه ځای.

نواره (nawārá) ښځ.م. سپینه غوټۍ، شګوفه.

نواري (nwārí) نر.ج. پوښاک، جامې، کالي.

نواړ (nwāṛ) نر.م.وګ. نوار.

نواړه (nwāṛá) ښځ.م. کوچنۍ بېړۍ چې د سیل لپاره کارېږي.

نواړه (nwāṛá) نر.م. غم، خفګان.

نواړی (nwāṛáy) نر.م. ۱)په ییوې کې له قولبه کولو یا لیکې پاتې ځای؛ ۲)اورده ټکونه، نګېره، ارت ګنډ، کچه ګینده، ارتې بخۍ، غاړې لماړې، وت، درز.

نواز (nawā́z) ص. نر.م. ۱)پالونکی، عزت ورکوونکی، ساتونکی؛ ۲)د لاحقې په توګه له اسم یا صفت څخه وروسته استعمالېږي لکه: غریب نواز...

نوازش (nawāzə́š) نر.م. مهرباني، عنایت، کرم، لطف.

نوازنده (nawāzındá) نر.م. سندرغاړی، هنرمند.

نوافذ (nawāfíz) ښځ.م. د وجود سوري لکه د پوزې، غوږونو او مقعد سوري.

نوال (nawā́l) نر.م. ښنه، بخښنه، عطا، ورکړه.

نواله (nawālá) ښځ.م. نمړی، نوړی، کپه، لقمه.

**نواندی** (nawänday) نر.م. نوفکری، نوخیالی، د نوي اند لرونکی.

**نواندي** (nawāndí) ښځ.م. نوفکري، نوخیالي.

**نوباده** (nawbādá) ښځ.م. ۱) نوې رارسېدلې مېوه؛ ۲) هغه پچې یا کوچنۍ توکرۍ چې باغوان يې له چاڼ کړو مېوو او ګلونو نه ډکه او چا ته ډالۍ کوي.

**نوبت** (nobát) نر.م. ۱) وار، نمبر؛ ۲) نغاره.

**نوبتي** (nobatí) ص. نب. ۱) واریز، لمبري؛ ۲) چوکیدار، نغاره چي، جاروهونکی، د خبرولو لپاره ډول وهل.

**نوبر** (nawbár) نر.م ۱) نوې رسېدلې مېوه؛ ۲) نوې ویستلې شوې ویاله.

**نوبنسټی** (nawbansáṭay) نر.م. نوستی، نوبنیاد.

**نوپال** (nawpā́l) نر.م. نوخوښی، نوی پالونکی، نوین ګرا.

**نوتېغی** (nawtéğay) نر.م. نوتوکی، نوزرغونی، نوی توکېدلی، نورس.

**نوټ** (noṭ) نر.م. ۱) بانکنوټ؛ ۲) یادښت.

**نوټکی** (noṭakáy) ښځ.م. هغه انځور اونقش چي په لمڅي او جوال کې جوړېږي.

**نوجن** (nawján) نر.م. ۱) زوه لرونکی؛ ۲) سلایم، مرطوب.

**نوځلی** (nawǰcláy) نر.م. نوی ډول، نوی تیپ، طراز نوین.

**نوڅک** (nawĉák) نر.م. ۱) پرخه؛ ۲) نوی ځوان.

**نوڅی** (nawĉáy) ښځ.م. بازاري جنی، کچنی، ډمه.

**نوحه** (nawhá) ښځ.م. ژړا، فریاد، ویر کونه.

**نوحه ګر** (nawhagár) ص. نر.م. هغه کس چې په مړي د ویر سندرې وايي، نوحه خوان.

**نوخط** (nawxát) ص. نر.م. هغه ځوان چې خط و بریتې یې ایله راغلي وي، نوی زلمی، نوی ژنی.

**نوخول** (nuxawál) مص. مت. ډېر هیله من کول، ډېر په اشتها راوستل.

**نوخېدل** (nawxedál) مص.ل. زیات محتاج کېدل، ډېر غریب کېدل.

**نور**(۱) (nor) ص.نر.م. ق. زیات، پردي سربېره، نوربیا.

**نور**(۲) (nwár) نر.م. لمر، نمر.

**نور**(۳) (nūr) نر.م. ۱) رڼا؛ ۲) رونق؛ ۳) پاک کلام.

**نوراني** (nūrānī) ص. نر.م. روڼ، ځلېدونکی.

**نوربیا** (norbyā́) ښځ.م. دوامدار، ورپسې، نور نو، پر له پسې.

**نورپنځلی** (nūrpanǰálay) نر.م. له نوره پیدا، له نوره رامنځ ته شوی، افریده ء نور.

**نورڅرکی** (nwarcrákay) نر.م ۱) لمرڅرکی، یو ډول سپین نری مار؛ ۲) نوې راختنه، لمرڅرک.

**نورغاند** (nawraǧā́nd) نر.م. نوسازی، نوبستونی، نوساز.

**نورغاونه** (nawraǧāwána) ښځ.م. نورغاوی، نوې رغاونه، بیا رغاونه.

**نورس** (nawrás) ص. نرم. تازه، نوی توکېدلی.

**نورک** (nurák) نر.م. لباس، توکر، جامې، نمرې.

**نورمال** (nurmā́l) نر.م. ج. برابر، سم، عادي.

**نوروز** (nawróz) نر.م. ۱) د لمریز کال لومړۍ ورځ؛ ۲) د نوروز جشن.

**نوروزي ګل** (nawrozigwál) نر.م. د یو ډول ګل نوم.

**نورول** (norawál) مص. مت. تبدیل کول، بدلول، اړول، تغییرول.

**نوري** (nwarí) نر.م. جامې، پوښاک، کالي، نمرې.

نوربدل (noredā́l) مص. ل. بدلېدل، تبدیلېدل، اوړېدل، اوښتل، تغییرېدل.

نوړول (nuṛawā́l) مص. مت. له بېخه ورانول، ړنګول، نړول.

نوړۍ (noṛáy) ښځ.م. لقمه، نواله، ګېه.

نوړېدل (nuṛedā́l) مص. ل. نړېدل، غورځېدل، پرېوتل، نړېدل.

نوز (nawz) نر.م. راز.

نوزده کړی (nawzdákṛay) نر.م. نوی شاګرد، نوی زده کوونکی، مبتدی، نو آموز.

نوزی (nū́zay) نر.م. ۱) بیلو، باټ؛ ۲) ص. نر.م. نوی، د تاکید لپاره استعمالېږي – نوی نوزی؛ ۳) نوسی.

نوزېږی (nawzéẓay) نر.م. نوی زېږېدلی، نوزاد.

نوژن (nawžā́n) ص.نر.م. نمژن، نمجن، لوند.

نوږ (noẓ) ص. نر.م. نږه، سوچه، خالص، شخړه.

نوږدل (noẓdā́l) مص. ل. ۱) تېوحل، تېوخېدل؛ ۲) اینګی اچول، انتوشی کول.

نوږند (noẓā́nd) نر.م. پرنجوونکی، نوږوونکی، نوږی راوړونکی.

نوږنوم (nuẓnū́m) نر.م. جنس نوم، اسم جنس.

نوږول (noẓawā́l) مص.مت. خالصول، صفا کول، نږه کول.

نوږی (noẓáy) نر.م. ۱) جنس،نوغی، اصل ،ریشه، بېخ؛ ۲) انګی، انتروشی، اینګی، ترنجی.

نوږېدل (noẓedā́l) مص. ل. صفا کېدل، سوچه کېدل.

نوږیز (noẓíz) نر.م. د نوږي اړوند، د جنس اړوند، جنسي.

نوس (naws) نر.م. نفس، انساني غوښتنه، هوس.

نوسا (nusā́) نر.م. د اوربلولو لپاره لړ اور، لړ انګار.

نوستل (nwastā́l) مص. مت. ګډوډ کول، تیت پیت کول، دانه وانه کول.

نوسه (nwasá) ښځ.م. خوند، ذایقه، مزه.

نوسي (nawsí) ص. نر.م. ۱) نفسي، د خواهشاتو پابند؛ ۲) نافرمان، سرکش، یاغي، باغي؛ ۳) د (نوسی، لمسی) جمع.

نوسی[1] (nū́say) نر.م ۱) مرخینک، موی چینک، د نریو او باریکو شیزونو د نیولو اله؛ ۲) امبور.

نوسی[2] (nwasáy) نر.م. لمسی، نمسی.

نوش (noš) نر.م. ۱) ښبنه؛ ۲) خوشګوار شیز، ګبینه؛ ۳) تریاک، آب حیات.

نوشته (nawištá) نر.م. تحریري، کتابت، لیکل.

نوش دارو (nošdārū́) نر.م. ۱) تریاک، اپین، زهرموره؛ ۲) شراب.

نوشل (nošā́l) مص.مت. ښنبل، چنبل.

نوشین (nošín) ص. نر.م. خوږ، شېرین.

نوښت (nawāṣt) نر.م. نوښتون، نوون، نوچار، ابتکار، ابداع.

نوښتګر (nawāṣtgár) ص.نر.م. نوښتوال، د نوښت ښښتن، مبتکر.

نوښتګرانه (nawāṣtgarānā́) ښځ.م. په نوښتګره توګه، مبتکرانه.

نوښتون (nawaṣtū́n) نر.م. نوښت.

نوښخ (nūṣáx) نر.م. چنګک (د کب نیوونکي، تنور والا او قصاب کونډه).

نوع (nawʿa) نر.م. قسم، ډول، درجه، صنف.

نوغ (nuğ) نر.م. ۱) بېخ، بنیاد، اصل، جرړه، تخم؛ ۲) نښه، چاپ، ټاپ؛ ۳) تندی خوسکی.

نوغاړی (nuğā́ṛay) نر.م. منجیله شوي غنم، منجیله.

نوغه (nū́ğa) ښځ.م. غرنۍ ونه ده، توري دانې کوي.

**نوغی** (nū̆ğay) نر.م. ۱) داغ، علامه؛ ۲) اصلي، بېخ، د جنس دول.

**نوغی نوغی** (nū̆ğaynū̆ğay) ص. داغ داغ، تپی تپی، ټاپی ټاپی.

**نوک** (nuk) نر.م. د ښکر له ذاته یو نری پتری چې د انسانانو او حیواناتو په بدن باندې راخېژي.

**نوکارول** (nūkārawál) مص. مت. نوکارې کول، شوکارې کول.

**نوکاره** (nūkā́ra) ښځ.م. شوکاره، د نوک زخم.

**نوک تراش** (nūktrā́š) نر.م. د نوک پرېکولو اله، نوکانی.

**نوکر** (nokár) نر.م. ملازم، خادم، خدمتگار.

**نوکرنگ** (nūkráng) نر.م. د نوکانو رنگ، د نوکونو رنگ، رنگ ناخن.

**نوکریوال** (nukariwā́l) ص نر.م. هغه چې نوکري کوي.

**نوک سوان** (nūkswā́n) نر.م. نوک سوانوونی، نوک سوهان.

**نوک نیول** (nūkniwál) مص. مت. ځنډول، دمه کول، ډیل ورکول، تأخیر کول، خبره نیول، په خبرو کې سا اخیستل یا دمه کول.

**نوکونه جنگول** (nukū́najangawál) مص. ل. د چا په جنگ خوشالېدل، دوه کسه جنگول.

**نوک ووری** (nūkw wuráy) ص. نر.م. ډېر نریدې، ډېر خواړه.

**نوکه** (nū́ka) ښځ.م. ۱) د ځناورو د سینې هغه برخه چې په ځمکه لگېدلې وي؛ ۲) نیچه؛ ۳) د چرسو یوه وړه برخه، د چرسو ټوکره.

**نوکی سترگي** (nukáystárge) ص. ښځ.م. وړې سترگي، چوچې سترگي.

**نوکی** (nū́kay) ص. نر.م. ۱) ډېر وړوکی، ډېر لږ؛ ۲) نر.م. هغه سپی چې پوره شل نوکونه ولري.

**نوکی نوکی** (nūkaynū́kay) ص. ټوټې ټوټې، ذره ذره.

**نول** (nūl) نر.م. ۱) غم، فکر، پرېشاني، خپگان؛ ۲) طرز، طریقه، دستور، چلند، رواج.

**نولت** (nūlát) نر.م. خنزیر، خوک، بد ځناور.

**نولجن** (nūljan) ص. نر.م. ج. غمجن، خپه.

**نول ځول** (nūlǯū́l) نر.م. په خوارو زارو، په ډېر کړاو، په ډېره سختۍ، په ډېر تکلیف.

**نولکی** (nawlákay) ص. نر.م. شوخ سترگی، گستاخ، بې لحاظه.

**نولول** (nulawál) مص. مت. غمگین کول، تکلیف رسول، پرېشان کول.

**نولېدل** (nuledál) مص. ل. کړېدل، غمگین کېدل، فکرمن کېدل، اندېښنه پیدا کېدل، زړه خوړل.

**نولی** (nawláy) نر.م. خانې، موش خرما، له مږې نه غټ حیوان چې اوږده او ببره لکۍ لري.

**نوم** (nūm) نر.م. ۱) نام، نامه، اسم؛ ۲) مشهورتیا؛ ۳) ناف، د وجود د یوه ځای نوم.

**نوماند** (numā́nd) نر.م. و.گ. نوماندی.

**نوماندی** (numā́nday) ص. نر.م. نامتو، نومور، مشهور، نامور، نومیالی، کاندید، نامزد.

**نوم اوړون** (nūmawṛū́n) نر.م. نوموال اوړون، د اسم تصریف، د نوم گردان.

**نوم اوښتون** (nūmawuṣtū́n) نر.م. د نوم تغبیر، د نوم مغیره حالت.

**نوم بدی** (nūmbáday) ښځ.م. بدنامي، نوم بدېدنه.

**نومپوهه** (nūmpóha) ښځ.م. نومپوهنه، نوم څېړنه، علم الأسماء.

**نوم پېر** (nūmpér) نر.م. د نوم حالت، د اسم حالت.

**نوم پېژندون** (nūmpežandū́n) نر.م. نومپېژندنه، د نوم تعریف، د اسم تعریف.

**نومترنگ** (nūmtaṛáng) ښځ.م. نوموالترنګ، اسمي ترکيب.

**نومځري** (nūmǰáray) نر.م. ضمير، د نوم ښکارندوی.

**نومځريز** (nūmǰaríz) نر.م. ضميري، د نومځري اړوند.

**نومړ** (nūmáṛ) ص. نر.م. نامتو، نامزد، نوموړی.

**نومړل** (nūmṛál) مص.ل. نومونه، يادول، نوم اخيستل

**نومړی**[1] (nūmáṛay) ص.نر.م ۱) مشهور، موسوم ۲) مقرر، نامزد، نامتو، نوموړی.

**نومړی**[2] (nūmṛáy) نر.م. ړومبی، زوړ، اولنی.

**نوم شمېر** (nūmšmér) نر.م. هغه شمېر (عدد) چې د نامه پر ځای راځي، اسمي عدد.

**نومل** (nūmál) مص. مت. نامزد کېدل، نامه ګڼل، نوم ساتل.

**نوم لاړی** (nūmláṛay) ص.نر.م. مشهور، نامتو.

**نومليک** (nūmlík) نر.م.ج. په يوه کتاب کې د راغليو نومونو (اعلامو) فهرست.

**نومليکنه** (nūmlikána) ښځ.م. نوم کښنه، ځان ځبره کونه، نوم ثبتونه.

**نومنوږی** (nūmnūẓay) نر.م. نوموال نوږی، اسمي جنس.

**نوموال‌ه غونډله** (nūmwālaǧwánḍla) ښځ.م. اسمي غونډله، اسمي جمله.

**نومور** (nūmawár) ص. نر.م. نوموړی، نامتو، نوميالی.

**نوم ورکی** (nūmwrákay) نر.م. ګمنامه، بې نومه غيرمعروف.

**نوموړی** (nūmawáṛay) نر.م. ۱) نومړ، نامتو، نوميالی؛ ۲) ياد شوی، ذکر شوی.

**نومولی** (nūmawálay) نر.م. نومول شوی، مسمی شوی، کانديد، نامزد.

**نومونپوهنه** (nūmawanpohána) ښځ.م. د تخنيکي نومونو پوهه، اصطلاحات پېژندنه، ترمينالوژي.

**نومونپوهنيز** (nūmawanpohaníz) نر.م. نومونيز، اصطلاحي، ترمينالوجيکل.

**نوم ونومولی** (nūmūnumawálay) نر.م. اسم ومسمی.

**نومونه** (nūmawána) ښځ.م. نوم ايښوونه، تخنيکي نومونه.

**نومهال** (nawmahā́l) نر.م. نوی مهال، نوی عصر، جديد عصر.

**نومهالی** (nawmahālay) نر.م. د نوي مهال، د نوي عصر، د جديد عصر.

**نوميات** (nūmyā́t) ص. نر.م. د نومياد اوښتې بڼه، نامتو، نامور.

**نوميالی** (nūmyāláy) ص.نر.م. نوموتی، نامور.

**نومېدل** (nūmedál) مص.ل. ټاکل، ټاکلی کېدل، نامزد کېدل.

**نومېرل** (nūmerál) مص.ل. ټاکل، تشخيصول، جوتول.

**نومېرنه** (nūmerána) ښځ.م. ټاکنه، جوتونه، تشخيصونه.

**نوميز** (nūmíz) نر.م. نوموال، اسمي.

**نون**[1] (nūn) نر.م. د «ن» د توري تلفظ.

**نون**[2] (náwan) ص. نر.م.ج. نمجن، نمناک.

**نونځه** (nūnacá) ښځ.م. ۱) نقاهت، ناروغي، رنځوري؛ ۲) کرکه، کرنه؛ ۳) کمزوري.

**نونځی** (nū ncáy) نر.م. تر ناروغۍ وروسته د کمزورۍ يا رغېدا دوره تېرونکی.

نونډ (nūnd) نر.م. لوند، نمناک، خیشت.
نونکی (nūnakáy) ښځ.م. ۱) وړې وړې دانې، نینکی، بخار؛ ۲) د حیواناتو د پښو د سوماتو (نوکانو) چاود یا درز.
نونه (nawána) ښځ.م. لمده، لنده، مرطوبه، نمناکه.
نوها (nawhā́) ښځ.م. لوږه، حاجت، فقر، بېوزلي.
نوهاتوب (nawhātób) نر.م. لوږه تنده، اشتها، د خوراک لېوالتیا.
نوی (nawáy) ص.نر.م ۱) جدید، تازه؛ ۲) بې تجربه.
نوید (nawíd) نر.م. زېری، د خوشحالۍ خبر.
نویتوب (nawaytób) نر.م. تجدید، نویوالی.
نویستنه (nawistána) ښځ.م. نویستوني، نوې را ایستنه، اختراع.
نویستونی (nawistū́nay) نر.م. مخترع، نوی منځ ته راوستونکی، د یو شي نوی پیدا کوونکی.
نوې ښکارنده (nawe ṣkarandá́) ښځ.م. نوې پدیده، نوی مظهر.
نوېلی (nawélay) نر.م ۱) د واده بلنه؛ ۲) بلندره، بلنه، راغوښتنه.
نوی نوزی (nawaynózay) ص.نر.م. بالکل نوی، بېخي نوی، سوچه نوی، نوی زوی.
نویونی (nawyū́nay) نر.م. نوسفری، سفرنه کړی، چې سفر یې نه وي کړی.
نه (ná) اد. ۱) د نفې لپاره راځي، یه، نې؛ ۲) النډۍ په اخره مصرع کې د وزن د ساتلو لپاره راځي.
نهار (nahā́r) ص.نر.م. نهر، وږی.
نهارې (nahā́re) ښځ.م. نارې، لوږې، تندې نهرې.
نهال (nıhā́l) ص.نر.م. ۱) نیالول، کښېنول، تازه نیالګی؛ ۲) آباد، خوشال، خوښ، شتمن.
نهالول (nıhālawál) مص. مت. ۱) نیالګي کښېنول، بوټي لګول؛ ۲) ابادول، خوشالول.
نهالی (nıhāláy) ښځ.م ۱) نیالی، توشک؛ ۲) ص. هغه فصل یا نیالګی چې نهال شوی وي.
نهالېدل (nıhāledál) مص.ل. ۱) توکېدل، نالېدل کېدل؛ ۲) آبادېدل، ودانېدل.
نهام (nıhā́m) ص.نر.م. پټ، پټ په پټه، نیهام.
نهامول (nıhāmawál) مص. مت. پټول، چپ کول.
نهامېدل (nıhāmedál) مص.ل. چپ کېدل، پټېدل.
نهان (nıhā́n) ص.نر.م. نهام، پټ.
نهایت (nıhāyát) ص.نر.م. ۱) انجام، اخر، انتها؛ ۲) نر.م. په شدت سره، په بې صبرۍ سره؛ ۲) بې اندازې، ډېر زیات.
نڅه (naca) ق. معمولي خبره، تشه خبره، لږ څه.
نهر (nahár) ص.نر.م. ۱) وږی، نهار؛ ۲) نار، نېر، لویه ویاله؛ ۲) د دریاب یوه ښېله.
نهر نهوز (nahārnahór) ص.نر.م. وږی تږی.
نهنګ (naháng) نر.م. یو غټ سمندري حیوان.
نهې (nahé) ښځ.م. ۱) ناروا کار، منع شوی کار؛ ۲) څلورم ورځ، د سه شنبې ورځ.
نهیب (nahíb) نر.م. ۱) وېره، ډار؛ ۲) لوټمار.
نهیل (nahíl) نر.م. ۱) نېل، نم لرونکی، چتټه هوا؛ ۲) ص.نر.م. مایوس، ناامید، محروم.
نهیلي (nahilí) ص.نر.م. محرومیت، نا امیدي.
نهیلی (nahiláy) نر.م. ناامیده، بې تمې، ناهیلی.
نی (nay) نر.م. ۱) شپېلۍ؛ ۲) دورمه، نل، نچه؛ ۳) وروستاړی لکه ښېګانی، اوسنی، پخوانی.
نیا (nyā́) ښځ.م. انا، نیاګۍ، د مور یا د پلار مور.
نیابت (nıyābát) نر.م. نایب توب، نایب کېدنه، نایبي، قایم مقام، ځای ناستیتوب.
نیاتي (nıyātí) ص.نر.م. ښه نیت لرونکی، نیتي.
نیاره (nyā́ra) ښځ.م. د زرګر د دوکان خځله.

نیاره گر (nyāragə́r) ص. نر.م. د زرگر د دوکان د خځلو پاکوونکی.

نیاز (nyāz) نـر.م. ۱) عاجزي، غـریبي؛ ۲) اړتیا، محتاجي؛ ۳) عذر، منت؛ ٤) نذر.

نیازمن (nyāzmə́n) ص.نر.م. نیازمند، خواهشمند خاکسار طبع؛ ۲) اړ، محتاج، اړمن.

نیازمندي (nyāzmandí) ښځ.م. ضرورتمندي، حاجت مندي، خاکساري، تابع داري.

نیازی (nyāzáy) ص. نر.م. ۱) عـرض کوونکی؛ ۲) عاشق، محبوب؛ ۳) د پښتنو یوه قبیله ده.

نیاګۍ (nyagə́y) ښځ.م. نیا، ادې، د مـور یا پلار مور.

نیال (nıyā́l) نر.م. نال، نهال، ډکی.

نیالګی (nıyālgáy) نر.م. تازه ډکی، هغه ونه چې پاخه عمر ته رسېدلې نه وي.

نیالي (nıyā́li) ښځ.م. توشکه، تورشکه، نالۍ.

نیام (nıyā́m) نر.م. د توري تیکی، د توري پوښ.

نیامده (nıyāmdá) ص. نـر.م. ناخـاپـه، نابـره، سمدلاسه.

نیاني (nıyā́ni) ص. نـر.م. ۱) تاواني، نقصاني؛ ۲) موذي، مضر.

نیاو (nyāw) نر.م. پرېکړه، عدل، انصاف، دادرسي.

نیاوتون (nyāwtun) نـر.م. نیاوځی، د عدالت محکمه، عدلیه.

نیاوتوني (nyāwtúni) ښځ.م. محکمه یي، عدالتي، عدلیه یي.

نیاومن (nyāwmə́n) نر.م. نیاو لرونکی، نیاوی، عادل.

نیاومني (nyāwmā́ni) ښـځ.م. نیـاومنوالی، نیاومنتیا، عادلتوب.

نیاوه (nıyāwá) ښځ.م. تاوان، جرمانه، ناغه.

نیاوی (nyāwáy) نـر.م. منصف، عادل، انصاف کوونکی، حق رسوونکی، پرېکړه کوونکی.

نیایي (nyā́yi) نر.م ۱) د مور ورور، ماما، ۲) د ترور خاوند، د ترور مېړه، د مور اخښی.

نېب (neb) ص. نر.م. پرله پسې، مسلسل.

نیبره (nibrá) ښځ.م. د یوې ونې نـوم دی چې ترخې پاڼې لري.

نیت (nyát) نر.م. اراده، اصلي مقصد.

نیتي (nyatí) ص. نر.م. ۱) اخلاصمن، اخلاصي؛ ۲) مقتدي، امام پسې نیت تړونکی.

نېټه (netá) ښځ.م. تاریخ، وخت.

نېټه لیک (netálik) نـر.م. ښېبلیک، د ښېښـو لیکنه د وخت په ترتیب.

نېچ (nеč) ص. نر.م. ۱) کم ذات، کمینه، بد اصل؛ ۲) نر.م. و.ګ. کلبچ.

نیچ (nyač) نر.م. کرېه، د وړو مرغیو د نیولو آله.

نېچکی (nečkáy) نر.م. خوږه ګیاه ده.

نېچه (nečá) ښځ.م. نلۍ، ۱) د سا اخیستلو پایپ؛ ۲) د جولاګانو نېچه، نچه.

نېچی (nečáy) نر.م. لبچی، د دروازې چوکاټ.

نېخو (nexó) نر.م. مرسته کوونکی، مرستیال.

نیرنګ (nayráng) نر.م. ۱) مکر و فریب، تګي، چل، چم؛ ۲) جادو؛ ۳) چالاکي.

نیرو (nayró) نر.م. طاقت، قوت، ځواک.

نېره (nerá) ښځ.م. د پیـزار ګنډلـو ستن، د شکرۍ جوړولو او سپنیزه نرۍ سر لرونکې آله.

نیره (nirá) ښـځ.م. یو ډول بوټی دی چې پاڼه یې د نظرماتي لپاره کارېږي، نظرپاڼه.

نېز (nez) نر.م. سېلاب، توی، سیند.

نېزوبی (nezobáy) ص. نر.م. د نېز اوبه، خړه، د سېل اوبه.

نېزوړی (nezawaṛay) نـر.م. د سېلاب راوړي خځلې، گنگڅر، گینجڅر.
نېزه (nezá) ښځ.م. ۱) د لـوښې آلـه چې د آسن په سورلی ترسره کېږي؛ ۲) د جنگ وسله؛ اوږده اوسپنیزه سومبه؛ ۳) یو ډول بوټي دی، درمه.
نېزه باز (nezabāz) ص.نر.م. چې په نېزه وهلوکې ماهر وي، هغه څوک چې نېزه وهي.
نېزه بازي (nezabāzi) ښځ.م. یو ډول لوبه ده.
نېزه وار (nezawár) نر.م. نېغ، رسا، سیخ.
نېزی (nezáy) ښځ.م. برجي، هغه کاڼی چې چاړه پرې تېره کېږي، نوزی برجي کاڼی، بلو.
نېژدې (neždé) ص. ښځ.م. قـریب، نـږدې، جوخت.
نیسان (naysán) نر.م. ۱) پسرلی، بهار، څرمنی؛ ۲) د پسرلي دوهمه میاشت، دغوایي میاشت.
نېست (nést) ص.نر.م. نشت، نشتوالی.
نېستگار (néstgár) ص. نـر.م. مفلس، غریب، نېستمن، خوار، فقیر.
نېستمن (néstmán) ص.نر.م. غریب، بېوزلی، بې وسیلې، مفلس.
نېستول (néstawál) مص.مت. بربادول، خرابول، نابودول، له منځه وړل.
نېست ونابود (néstunābūd) ص.نـر.م. تباه او برباد، تباه شوی، برباد شوی.
نېستي (nésti) ښځ.م. غربت، افلاس، خواري.
نېستېدل (néstedál) مص.مت. فنا کېدل، پوپنا کېدل، ختمېدل.
نېسخ (nesáx) ص. نـر.م. شکمن، بې اعتماده، بې اعتباره، بدگومان.
نېش (neš) نر.م. ۱) لشه، لېشه؛ ۲) ازغي، اغزي؛ ۳) د نېزې څوکه؛ ٤) زهر.

نېښت (nešt) ص.نر.م. نېستي، نشتوالی، غریبي، بېوزلي.
نېښکر (néšakar) نر.م. و گ. گنې.
نېښ (neṣ) نـر.م. ۱) لېښه، لشه، د چرگ د پېنې ښنگری؛ ۲) د بوټي تېغ؛ ۳) جونگ، جونگی؛ ٤) د نېښې غاښونه.
نېغړه (neğṛa) ښځ.م. بوکس، نېغړی.
نېغړي (neğṛi) ښځ.ج. کوگل، گوگل، تر تټېر د ننه غړي لکه ینه، زړه، کولمې.
نېغول (neğāwál) مص.مت. سیخ او سم ودرول.
نېغی (neğáy) نر.م. خینجکی، تېغک، د ښځو د فرج تېغکی.
نېغۍ (neğáy) ښځ.م. بې حیا او بدکاره ښځه.
نېغېدل (neğedál) مص. ل. شخ او نېغ ودرېدل.
نېقړي (neqṛi) ښځ.ج. و گ. نېغړي.
نېک (nek) ص. نـر.م. ۱) ښـه، متقي، شـریف؛ ۲) نر.م. هغه ضمانت چې مخکې له مخالفو څخه اخیستل کېږي.
نیک (nayák) نر.م. بادار.
نیکاره (nikára) ښځ.م. نوکاره.
نېک الواکی (nekalwakay) نر.م. د نېک نظر څښتن، نېک نظری.
نېک اندی (nekanday) نـر.م. ښـه اندی، سم اندی، نېک خیاله.
نیکانه (nikána) ښځ.م. د نیکه کور، نیکه گنۍ.
نېک بخت (nekbáxt) ص. نـر.م. نېکمرغه، نېک طالع، بختور.
نېک پای (nekpay) نـر.م. نېک پایلی، نېک انجام، نېک فرجام.
نېک چاری (nekčaray) نـر.م. نېک کاري، ښه کاری.

نېک چاري (nekčari) ښځ.م. نېک کاري، ښه کاري، ښهانه، ښېګڼه.
نېک چلند (nekčaland) نر.م. پوست چلند، نېک رفتار.
نېک خواه (nekxwá) ص. نر.م. خواخوږی، خیرخواه، همدرد، نېکي غوښتونکی.
نېک خويه (nekxoya) ښځ.م. نېک خصلته، نېک سیرته، نېک عادته.
نېکخويي (nekxoyi) ښځ.م. نېک خصلتي، نېک سیرتي، نېک عادتي.
نېکر (nekár) نر.م. چوتی، جانګی، جنګی.
نېک زړی (nekzaṛay) نر.م. پاک زړی، سپین زړی.
نیکل (nikəl) نر.م.ج. یو ډول فلز.
نېکمرغه (nekmárğa) ص.نب. نېکنامه، نېک بخته، ښه مرغه، بختور.
نېک نامی (neknāmáy) نر.م. نېکنومی، چې نېک شهرت ولري.
نېک نامي (neknāmí) ښځ.م. په ښه نامه يادېدنه، ښه نامه لرنه، په نېکه يادېدنه.
نېکو (nekó) ص.نر.م. نېکسیرت، نېک سړی.
نېکوکار (nekokár) ص.نر.م. نېک سړی، نېک کار کوونکی، نېک عمله.
نيکه (niká) نر.م. د مور يا د پلار پلار، باباجي. ۲) مشر سړي ته د درناوي کلیمه.
نېکي (nekí) ښځ.م. ښېګړه، ښه کړه، ښه کول.
نيل (nil) نر.م ۱) اودي رنګ؛ ۲) وسمه؛ ۳) د ګوزار نښه؛ ٤) یو مرکب چې جامې پرې رنګوي.
نيلګر (nilgár) نر.م. رنګرېز، جامې رنګوونکی.
نيلم (nilám) نر.م. شينبخون قيمتي کاڼی.
نيلو (niló) ښځ.م. نيل، رنګ.

نيلوفر (nilofár) ښځ.م. ډوډه، ډنډه، شين بخون رنګه ګل دی.
نيلون (naylū́n) نر.م.ج. ۱) نايلون، ليلون؛ ۲) يو ډول ټوکر.
نيله (níla) ښځ.م. ۱) جـرړه، ببخ؛ ۲) يکی يو، د مور و پلار يوازينی زوی.
نيله توتيا (nilatotíá) نر.م. يوه شنه تيږه ده چې حکيمان يې د زخم رغېدو لپاره استعمالوي.
نيله ګاو (nilagáw) ښځ.م. سارايي څاروی چې له ګاوزې څخه لوی وي.
نيله مار (nilamā́r) نر.م. يو ډول مار.
نيلي (nilí) ص.نر.م. سوسني، نيلي رنګ.
نيلی (niláy) ص.نر.م ۱) يو ډول آس؛ ۲) سوسني.
نيلېدل (niledə́l) مص.ل. مستېدل، آس په دوو پښو درېدل.
نيم (nim) نر.م.ق. نيمايي، منځ.
نيمايي (nimāyí) ص. نب. په نيمه، نيم په نيمه.
نيم بند (nimbánd) ص.نر.م. ۱) نيمګړی کار؛ ۲) نيم پخته هګۍ.
نيم بسمل (nimbısmíl) ص.نر.م. نيم مړ.
نيم پخته (nimpuxtá) ص.نر.م. سنګک، چې پوره پوخ نه وي، يو شی داسې پخېدل چې نيم پوخ او نيم اوم وي.
نيم پر نيم (nimparnim) نر.م. نيمه برخه، نيمايي برخه، پوره نيمه برخه.
نيم پوخ (nimpox) نر.م. نيم اوم.
نيم په نيمه (nimpanima) ښځ.م.و.ګ. نيم پرنيم.
نيم تاب (nimtā́b) ص.نر.م. نيم نغښتی، نيم تاو شوی.
نيم تمغز (nimtamğaẓ) نيم انسدادي غږ.
نيم تنه (nimtaná) ښځ.م. جاکټ، بنيان.

**نیم جان** (nimján) ص. نر. م. ۱) مرګ ته نږدې؛ ۲) کمزوری، مړژواندی، نیم ځانی.

**نیمچه** (nimčá) ص. نب. ۱) هغه کس چې نوی ځوانۍ ته رسېدلی وي؛ ۲) دورګه؛ ۳) کم اصل.

**نیم ځانی** (nimʒ́ānay) نر. م. ۱) ډېر کمزوری؛ ۲) مرګ ته نږدې، نیم جان.

**نیم ځوړند** (nimʒ́waṛand) نر. م. نیم ځړېدلی، نیم رړند، نیم اوېزاند، نیم رپاند.

**نیمڅی** (nimcáy) نر. م. لیمڅی، لمڅی، یو ډول فرش چې له وړیو څخه جوړېږي.

**نیمڅي سترګي** (nimcestarge) ص. ښځ. م. بې شرمې سترګې، ابغې سترګې.

**نیمڅي ګر** (nimcigar) ص. نر. م. کراسګر، نیمڅي جوړوونکی، لمڅي جوړوونکی..

**نیم خام** (nimxám) ص. نر. م. کچه، چې پوره پوخ نه وي.

**نیم خند** (nimxand) نر. م. نیمه کړۍ، نیه دایره، نیمه حلقه.

**نیم خنده** (nimxanda) ښځ. م. نیمه خندی، نیمه دایره یي، نیمه دایروي.

**نیمخوا** (nimxwá) ص. ښځ. م. ارماني، نیمه خوا، نیمګړی، غیر مطمین.

**نیمرپاند** (nimrapand) نر. م. نیمځوړند، نیم هسک، نیم ځړېدلی.

**نیمروځی** (nimrojáy) ص. نر. م. ناشته، ناری، غرمنۍ ډوډۍ چې په مړه خېټه نه وي.

**نیمرویه** (nimroyá) ص. نب. نیم بنده هګۍ.

**نیمزالی** (nimzāláy) ص. نر. م. د پاخه عمر خاوند.

**نیمزالې** (nimzāláy) ص. ښځ. م. چته پېغله، د پاخه عمر لرونکې پېغله.

**نیمژبی** (nimžábay) ص. نر. م. تېرتری، تتله.

**نیمژواند** (nimžwánd) ص. نر. م. مړڅپن، ډېر کمزوری، مړژواندی.

**نیمژوبله** (nimžoblá) ص. نر. ښځ. زخمي، ژوبل شوی، خوږ شوی.

**نیم سری** (nimsaráy) نر. م. د نیم سر درد.

**نیمکاره** (nimkārá) ص. نب. ۱) په نیمه برخه ځمکه ورکونه؛ ۲) نیمګړی، نامکمل.

**نیمکښ** (nimkáṣ) ص. نر. م. نیمکښو، نیم بهرته، نیم لرې کړی شوی، نیم پرانیستی، نیم پورې.

**نیمکښو** (nimkaṣó) نر. م. و ګ. نیمکښ.

**نیم کله** (nimkalá) ص. نب. نیمګړی، نامکمل.

**نیمکوره** (nimkorá) ص. نیمایي، منځومانه، دوه رګی.

**نیمکی** (nimakáy) ښځ. م. ۱) د سندرو یو ډول؛ ۲) پرتوګ ته د نوې توتې اچونه؛ ۳) تقریباً د شپږ منه تخم ځمکه.

**نیمکی** (nimakáy) ص. نر. م. نیم، نامکمل کار.

**نیمګړتوب** (nimgaṛtób) نر. م ۱) نامکمل توب، کمي، خامي؛ ۲) لاس تنګی، احتیاج.

**نیمګړتیا** (nimgaṛtyá) ښځ. م. ۱) نیمګړتوب؛ ۲) حاجتمندي، احتیاج.

**نیمګړی** (nimgáṛay) نر. م. ۱) مشروط؛ ۲) چې پوره نه وي، ناقص، نیمه خوا، ارماني.

**نیمګړې همرنګي** (nimgaṛehamrangi) ښځ. م. برخیزه یا نابشپړه همرنګي.

**نیمګور** (nimgór) ص. نر. م. نیمګړی، نامکمل، ناتمام.

**نیموالی** (nimwálay) نر. م. په دوه ځایه نیمونه، تقسیمونه، وېشنه.

**نیمول** (nimawál) مص. مت. ۱) دوه توټې کول؛ ۲) برابرول؛ ۳) وېشل.

**نیمه** (nimá) ص. ښځ.م. ۱) دوه توټې؛ ۲) برابر؛ ۳) په منځ دوه ځایه.

**نیمه خوله** (nimaxwlá) ښځ.م. په اسانۍ سره، بې له منته.

**نیمېدل** (nimedә́l) مص. ل. دوه ځایه کېدل، دوه توټې کېدل، په دوو برابرو برخو وېشل کېدل.

**نینځکه** (ninʒáka) ښځ.م. لـوځکه، نېنځکه، ګوډۍ، لیځکه.

**نیندره** (nindrá) ښځ.م. هغه روپۍ چې د واده په وخت یې خلک د کور خاوند ته د بدل په دود ورکوي.

**نینک** (ninák) نر.م. دسترګو ګاټۍ یا کسی.

**نینوبی** (ninóbay) نر.م. پونه، زیم.

**نینولې** (ninа́wale) ښځ.م. سپینې وریجې.

**نینوونی** (ninawúnay) نر.م. هغه چاڼ چې وریجې پرې پاکېږي، چنوونی.

**نینه** (niná) ښځ.م. د غنمو، جوارو یا نورو غلو دانو وریته شوې دانه.

**نینې** (niné) ښځ.ج. د غلودانو وریتې شوې دانې.

**نینېدل** (ninedә́l) مص.ل. ۱) پټ پټ ژړل؛ ۲) نینې کېدل، وریتېدل، ترقېدل.

**نینې نینې** (ninéniné) ښځ.ج. پسخېدنه، ډېره لېوالېدنه.

**نینه** (nayána) ښځ.م. وګ. نایېنه.

**نیواک** (niwak) نر.م. نیوکه، اشغالګري، قبضه.

**نیواکګر** (niwakgar) نـر.م. بلوسګر، اشـغالګر، قابض.

**نیوکه** (niwáka) ښځ.م ۱) نیونه، خپلونه؛ ۲) کوژدن ۳) قبضه کونه؛ ٤) اجاره کونه؛ ٥) ګوتنیونه، انتقاد کونه.

**نیول** (niwә́l) مص.مت. ټینګول، اخیستل، نیسل، قبضه کول، راټینګول.

**نیولیک** (niwlik) نـر.م. د سرلیکونو (عنوانونو) فهرست.

**نیوه** (niwá) نر.م. نیونه، اخیستنه.

**نیهام** (nihā́m) ص. نر.م. پټ، د ښکاره ضد.

**نیهامول** (nihāmawә́l) مص. مت، له نظره اخوا کول، غیبول، غایبول.

**نیهامېدل** (nihāmedә́l) مـص.ل. له نظـره پنا کېدل، لـه نظـره غـایبېدل، غیبېدل، په نظـر نه راتلل.

# ڼ

ڼ (nuṇ) نر.م. د پښتو الفبې اته دېرشم توری دی، دغه توری د کليمې په سر کې نه راځي ځکه له «ن» او «ړ» ترمنځ ادا کېدونکی توری دی، ابجدي ارزښت يې د «ن» برابر يانې (۵۰) دی.

ڼۍ (naỵ) ښځ.م. د تصغير نوم نښه، لکه کوټنۍ، توکنۍ، کوزنۍ.



# و

و (wāw) نر.م. د پښتو الفبې نهه دېرشم توری، ابجدي ارزښت يې «٦» دی.

وا (wā) اد. دندا توری، د رابللو لپاره استعمالېږي، لکه: واسړيه!

واپس (wāpás) ق. پستنه، بېرته.

وات (wāt) نر.م. وت، عيب، نيمګړتيا.

واتۀ (wātá) نر.م. د باندې وتنه، د باندې تلنه.

واټ (wāṭ) نر.م. ۱) د برېښنا د مېچ کولو واحد؛ ۲) لاره، سړک، جاده، ۳) چم، کوڅه، محلت.

واټ مېچ (wāṭméč) د واټن د مېچ کولو آله.

واټن (wāṭán) نر.م. د دوو ځايونو ترمنځ ليرې والی، فاصله، مسافه.

واټی (wāṭay) نر.م. ځواک، طاقت، قوت.

واج (wāj) نر.م. دوه هم جنس يو تر بله بدلونه.

واجب (wājíb) ص. نر.م. لازم، حتمي، ضروري.

واجبول (wājıbawál) مص. مت. لازم کول.

واجبېدل (wājıbedál) مص. ل. لازم کېدل.

واحد (wāhíd) ص. نر.م. يو، مفرد، صرف.

واحه (wāhá) ښځ.م. سمسوره.

واخ (wāx) اد. فرياد، آه و زاري.

واخله (wāxla) ف. واخه، وګ. اخيستل.

واخېر (wāxér) نر.م. وګ. اخور.

وادګنی (wādgánay) نر.م. دواده زلمی، ودګون، وديزن، زوم، ودګنی.

وادۀ (wādá) نر.م. نکاح کونه، ازدواج، توی.

وادۀ تړ (wadatáṛ) نر.م. د واده بندوبست، د واده نېټه، د واده لنډون.

وادۀ والا (wādawālá) نر.م. واده کړی نرينه يا واده شوې ښځينه، متاهل يا متاهله.

وادي (wādí) ښځ.م. کښته ځمکه، کنده.

وار (wār) نر.م ۱) نمبر، نوبت، ځل؛ ۲) ګوزار، يرغل ۳) ګز، يارد؛ ۲) موقع؛ ۳) دور، هغه ښځينه

شاړۍ چې د جنسي عمل یا مالېدو لپاره ولري؛ ٤) امیدوار؛ صبر.

**وارپار** (wārpár) نر.م. ۱)حواس، هوښ، ساه؛ ۲)مورال.

**وارپه‌وار** (wārpawár) ق. نمبر په نمبر، نوبت په نوبت، په کتار، وار تر وار.

**وارتړل** (wārtaṛál) مص.مت. په خپلو منځو کې وارکول، په خپلو کې يو د نوبت پرېکړې ته رسېدل.

**وارث** (wārís) نر.م. سرپرست، خاوند، میراث خوړونکی.

**وارخطا** (wārxatá) ص.نب. وېرېدلی، ترهېدلی، وېرې اخیستلی.

**وارد** (wārid) نر.م.ص. ۱)راتلونکی، رسېدونکی؛ ۲)ماهر، پوه.

**واردات** (wāridát) نر.ج. ۱)له بهر نه د شیانو راوړل؛ ۲)حادثه، پېښه، جګړه، هنګامه.

**واردول** (wāridawál) مص.مت. ۱)پیدا کول؛ ۲)له بهر نه راوړل.

**وارد واره** (wārdwára) ق. ژر ترژره، سمدلاسه.

**وارده او صادره** (wāridaawsādirá) ښځ.م. د راجستر، په کتاب کې رسول.

**واردېدل** (wārideddál) مص.ل. و.ګ. واردول.

**وارسته** (wārstá) نر.م. آزاد.

**وارګر** (wārgár) نر.م. ۱)وار لرونکی، واره ګړی، د وار مالک؛ ۲)پېره دار.

**وارګره تبه** (wāragaratába) ښځ.م. واریزه تبه، ملاریا تبه، نوبتي تبه.

**وارګړی** (wārgaṛáy) نر.م. و.ګ. وارګر.

**وارنش** (wārníš) نر.م. يو ډول سرېښ چې په لرګيو کې استعمالېږي.

**وار وار** (wārwár) ق. وار د واره، سمدلاسه.

**واره** (wārá) ښځ.م. ۱)فرصت، موقع؛ ۲)خپلې ګټې ته کتنه؛ ۳)پېره.

**واره‌من** (wārmán) ص.نر.م. د ګټې وړ، ګټه‌من، واره‌دار.

**واره يي** (wārayi) ښځ.م. واره‌من، ګټور، ګټه‌من.

**واری** (wáray) نر.م. ځار، قربان، جار.

**واريز** (wāríz) ص.نر.م. نوبتي.

**وارېګړی** (wārigáṛay) نر.م. و.ګ. وارګر.

**واړه** (wáṛa) ص.نب. تول، ګرده، له يوه سره.

**واړهٔ** (wāṛá) ص.نر.ج. ووړکي، هلکان، ماشومان، کوچنيان.

**واړهٔ زاړهٔ** (waṛazaṛa) نر.م.ج. غټان او ماشومان.

**واز** (waz) نر.م. ۱)بېرته، خلاص؛ ۲)کلاتکاره سړی، ځان خوښی سړی، کبرجن.

**وازخولی** (wāzxúlay) ص.نر.م. وازه‌خوله لرونکی، کم عقل، کړتن.

**وازده** (wázda) ښځ.م. وازګه، غوړ، چربو.

**وازسترګی** (wāzstárgay) نر.م. شلېدلي سترګې لرونکی، ځیرسترګی، بې شرم او بې حیا.

**وازول** (wāzawál) مص.مت. خلاصول، بېرته کول.

**وازېدل** (wāzedál) مص.ل. خلاصېدل، بېرته کېدل، پرانستېدل، ارتېدل.

**واست** (wāst) ف. د جمع مخاطب ضمير.

**واسطه** (wāsitá) ښځ.م. ۱)منځګړی، رهبار؛ ۲)تړاو؛ ۳)رشته لرونکی؛ ٤)وسیله، ذريعه.

**واسع** (wāsíʿ) ص.نر.م ۱)پراخ، ارت، خپوروور؛ ۲)د خدای تعالی يو صفتي نوم.

**واسکټ** (wāskáṭ) نرم. سدرۍ، يو لباس.

**واسکه** (wāská) ف.مت. واسېکه، اوس، فوري، سمدلاسه.

**واسه** (wā́sa) ښځ.م. د پشکال میاشت.

**واسیکه** (wāsíka) ق. وګ. واسکه.

**واش** (wāš) نر.م. ۱)واښه، ګیاه؛ ۲)صفت، بې پروا، بې باکه، چتیات.

**واښ** (wāṣ) نرم. ۱)دوړی، غته رسی؛ ۲)دانګورو واښکلی، د انګور وړی؛ ۳)د څپلی پسکی.

**واښاوبی** (wāṣobáy) نر.م. بیاسته اوبدونکی، رسی اوبدونکی، پړی اوبدونی.

**واښکی** (wāṣkáy) نر.م. ۱)لنده رسی؛ ۲)د انګور غانګی، د انګور وښکالی.

**واښلوبه** (waṣlóba) ښځ.م. پیشو پړی، رسی کشي، پړی کښونه.

**واښه** (wāṣá) نر.ج. ګیاه، د ښارویو نباتي خواړه.

**واښه والا** (waṣwālā́) نر.م. واښه پلورونکی، واښه خرڅوونکی.

**واښی** (wā́ṣay) نر.م. ۱)هاړ، لړ؛ ۲)رسی.

**واصف** (wāsíf) نر.م. تعریف کوونکی، ستایوال، ستایونکی، د ښېګڼي بیانوونکی.

**واصل** (wāsíl) نر.م. یو ځای کېدونکی، شامل کېدونکی، رسېدونکی، وصل کېدونکی.

**واضح** (wāzíh) نر.م. ښکاره، روڼ، په پاکی سره.

**واضع** (wāzíʕ) نر.م. سازوونکی، جوړوونکی.

**واعظ** (wāʕíz) نر.م. ناصح، وعظ کوونکی.

**واعي** (wāʕí) نر.م. یاد ساتونکی.

**وافر** (wāfír) نر.م.ج. ۱)زیات، ډېر، زیات تعداد؛ ۲)د عروضو د علم د یو بحر نوم.

**واق** (wāq) نر.م. ۱)د سپي غپا؛ ۲)کب خورک، د هیلی په څېر یو مارغه چې په اوبو کې کبان خوري.

**واقع** (wāqíʕ) ص.نب. لوېدلی، ځای پر ځای شوی.

**واقعاً** (wāqıʕán) ق. په رښتیا سره، په واقعیت کې.

**واقع کېدل** (wāqıʕkedə́l) مص.ل. پېښېدل.

**واقعه** (wāqıʕá) ښځ.م. پېښه.

**واقعي** (wāqıʕí) ص.نب. په رښتیا، بالکل سم، سکوټ، په حقیقت کې.

**واقعیت** (wāqıʕyát) نر.م. رښتیا، حقیقت.

**واقف** (wāqíf) ص. نر.م.ج. ۱)بلد، اشنا، بلدي، پېژندګلو سړی؛ ۲)خبر.

**واقي** (wāqí) نر.م. د یوه مارغه نوم؛ وګ. واق.

**واک** (wāk) نر.م. طاقت، توان، اختیار.

**واکدار** (wākdā́r) ص.نب. طاقتور، واکمن، اختیارمن.

**واک لرونکی** (wāklarū́nkay) نر.م. واکدار، واکمن، اختیارمن.

**واکمن** (wākmā́n) نر.م. واکدار، واک لرونکی.

**واکمني** (wākmaní) نر.م. اختیار لرنه، واک لرنه، وس لرنه؛ پاچايي، پاچاهي.

**واکوال** (wākwā́l) نر.م. د اختیار څښتن، د حکومت مشر، واکمن، واکیالی، واکنده، واکدار.

**واکي** (wā́ki) اد. دلاحقې په توګه استعمالېدونکی توری چې فاعلي مانا پیدا کوي- خپلواکي.

**واکیالی** (wākyalay) نر.م. وګ. واکوال.

**واګ** (wāg) نر.م. ۱)یو کلن اوښ؛ ۲)د پېنځو کالو ګډ؛ ۳)وری.

**واګن** (wāgə́n) ص.نر.م. ګیچ، ډب ډوب، پرېشانه.

**واګڼ** (wāgə́ṇ) ص. نر.م. خفه، ناقرار، وېرېدلی، پرېشان، زهیر، ګنګس، واګن.

**واګون** (wāgū́n) نر.م. واګون، ویګن، یو ډول موټر دی.

**واګه** (wā́ga) ښځ.م. د اس څرمني قیزه.

**وال** (wāl) نر.م. ۱)وروستاړی دی لکه: جنوبیوال؛ ۲)د ساعت یوه پرزه، دنل پرزه؛ ۳)ویښته.

والا (wālā́) نـر.م. وروستاړی دی چې د څـښتن، کونکي، پلورونکي او... مانا ښندي.
والد (wālíd) نر.م. پلار، د مورمېړه.
والده (wālıdā́) ښځ.م. مور، د پلار ښځه، ابۍ.
والدین (wālıdáyn) ج. مور و پلار.
والګی (wālgáy) نر.م. بادوونی، توغکی، یخني، زکام، ریزش.
والهٔ (wālā́) ښځ.م. وياله، د اوبو نهر، بياله.
والي (wālí) نر.م. گورنر، د ولایت مشر و واکمن.
والۍ (wāláy) نر.م. لنبتۍ، غوږوالۍ، گوشواره.
والی (wā́lay) نر.م. وروستاړی دی- لوړوالی.
واليبال (wālibā́l) نر.م. په لاس سره د توپ لوبه.
وام (wām) نر.م. ۱) پور، قرض؛ ۲) د غره ابادہ برخه؛ ۳) لوړ کردار، دنگ؛ ٤) وېره، وهم.
وان (wān) وروستاړی دی لکه جاله وان، موټروان او... چې د څښتن، چلوونکي او روزونکي مانا ښندي.
وانجو (wānjú) نر.م. توره دانه، سیاه دانه.
واند (wānd) نر.م. گومان، خیال، شک، اندازه.
واندیز (wandiz) نـر.م. خیالي، گوماني، د خیال اړوند، تخیلي.
وانډ (wānḍ) نر.م. ځنگل.
وانډه (wānḍā́) ښځ.م. بانډه، د مالدارانو او کوچیانو د استوگنې موقتي ځای.
وانږل (wānẓā́l) مص. د سپي انگولا.
وانګ (wāng) نرم. انار.
وانگې وانگې (wā́ngewā́nge) ص. نب. تیکه تیکه، پارچه پارچه، ټوټه ټوټه.
واڼل (wāṇal) مص.مت. وړل، وړول، میده کول.
واڼه (wā́ṇa) ښځ.م. ۱) غـوبل شوې غله؛ ۲) غنم میده کول یا اوړه کول.
واڼې (wāṇí) ښځ.م. د پښو اعصاب.
واڼې واڼې (wā́ṇewā́ṇe) ص. ټوک ټوک، څیر څیر، ټوټې ټوټې، پوټې پوټې.
واو (wāw) نر.م. توری، د «و» توري تلفظ.
واوا (wā́wā́) اد. ۱) د شاباس کلیمه، داد گیرنه، ډېر ښه؛ ۲ص. ښکلې څیز.
واورا (wā́wrā́) نر.م. یو مردارخور مرغه.
واورپاک (wawarpak) نر.م. واوره پاکوونکی، د واورې راشپېل، پاکاری.
واورپاکي (wawarpaki) ښځ.م. واوره پاکي، واوره پاکونه، واوره لیرې کونه.
واورپلوری (wawarploray) نر.م. واوره والا، واوره پلورونکی، واوره خرڅی.
واوردوړ (wawardoṛ) نر.م. بادوره، گربگری.
واورش (wawraš) نر.م. یمال، ییمال، برف کوچ.
واوروب (wawrob) نـر.م. پـرپ، واوروبه، واوروبی، د واورې اوبه.
واورین (wāwrín) نـر.م. واوریز، لـه واوروډک، پر واورو پټ.
واوره (wā́wra) ښځ.م. ۱) بـرف؛ ۲) کنگل شوې اوبه، یخ؛ ۳) امر. بشنو، د اورېدلو امر.
واوره ڼۍ (wārwraṇáy) نر.م. یخدان، یخچال.
واوېلا (wāwelā́) ښځ.م. ژړا، انگولا، آه و فغان.
واه (wāh) اد. د خوښۍ او خوشالۍ اواز.
واهب (wāhíb) ص. نـر.م. د الله تعالی یو صفتي نوم، حاجت پوره کوونکی، بخښونکی.
واهمه (wāhımā́) ښځ.م. د تصـور هغه زورچې احساسات پیدا کوي، د تخیل قوت.
واهي (wāhí) ص. نر.م. فضول، چټي، ناراسته.
وای (wāy) اد. فریاد، د غم او درد پر وخت اواز.
وای وای (wā́ywā́y) فریاد، د فریاد چغې.

وبا (wabā́) ښځ.م. مرگو، وژونکې ناروغي؛
وبال (wabā́l) نر.م. عذاب، آفت، گناه، بوج، بار.
وبدونکی (wabdunkay) نر.م. اوبدونکی، جولا، رخت جوړوونکی.
وبره (wabra) وروستاړی چې د لکه، په ځېر، غوندي او... مانا ښندي.
وبښبه (wabaṣá) ښځ.م. وبخښبه، بخښبنه وکړه، بخښنه غواړم.
وبښئ (wabaṣáy) وبخښئ، ببښنه وکړئ، ببښنه غواړم.
وبلن (wablán) ص. نر.م. نوژن، نمژن، نمجن.
وبلول (wablawā́l) مص. شربل، شاربل، یو تر بله گډول، له مستو شرومبې جوړول.
وبله[1] (wabalá) ق. یو تر بله، خپلوکې، په یو بل، یو له بله.
وبله[2] (wablá) ق. ۱) گډا؛ ۲) چاره.
وبله سوله ییز ژوند (wablasolayizžwand) گډ سوله ییز ژوند، مشترک سوله ییز ژوند.
وبنه (wabná) ص. نر.م. یاغي او سرکښ حیوان.
وپار (wəpā́r) نر.م. اړیکه، رابطه، لین دین، کاروبار، بیپار.
وپره (waprá) ص. نب. ۱) بوره یوره، نرمه نرمه؛ ۲) ارگجه، و گ. اوپره.
وت (wat) نر.م. ۱) درز، چاود، وړوکی سوری؛ ۲) الرې والی.
وتد (watád) نر.م. ۱) میخ، چوکه؛ ۲) د عروضو د علم په اصطلاح درې حرفي کلیمه.
وتر[1] (wátar) نر.م. ۱) د قایم الزاویه مثلث لویه ضلع؛ ۲) د مثلث د یوې زاویې مخامخ ضلع؛ ۳) وسه، توان، څواک.
وتر[2] (wítar) نر.م. د ماسختن درې رکعتیز لمونځ.
وتره (wátra) ښځ.م. ۱) نمجنه ځمکه، دییوې کولو وړ ځمکه؛ ۲) یو ځیز چې نم یا زیم ولري.
وتزن (watzan) ص.نر.م. سوری، پیوندي، سوري لرونکی.
وتکی (watkáy) نر.م. وتگی، وړوکی سوری.
وتگی (watgáy) نر.م. وړوکی تنگی.
وتل (watál) مص.ل. ۱) خارجېدل، بهر وتل، ظاهرېدل، ورچنې تلل، بېرون تلل؛ ۲) بندېدل، ښکېلېدل؛ ۳) پروا لرل، مینه لرل.
وتلار (watlar) نر.م. وتوځی، خروجي لاره، خروجي.
وتلی (watálay) ص. نر.م. ۱) د باندې تللی، د باندې وتلی؛ ۲) سر راایستلی؛ ۳) نامور.
وتنه (watána) ښځ.م. پروا، لېوالتیا، مینه.
وتوځی (watoǰay) نر.م. وتونځی، د غږ مخرج، مخرج.
وتون (watun) نر.م. وتنه، خارجېدنه.
وتونپېر (watunper) نر.م. توني کړول، مکاني قید، د مفعول منه حالت.
وتونوت (watunwat) نر.م. د مرغۍ لاره، نری وتلاره یا وتوځی.
وته (wata) ښځ.م. پاملرنه، توجه، وتنه.
وتی (wátay) نر.م. ۱) وتلی؛ ۲) اوچت، لوړ.
وتپ (wáṭ) نر.م. ۱) عیب، نقص، اعتراض، شک؛ ۲) لاو؛ ۳) د تازه رېبل شوي فصل ځمکه، وړ، خوځبره؛ ۴) د گنیو یا جوار و د سپینولو ځای؛ ۵) اقتصاد.
وتپوهنه (waṭpóhaná) ښځ.م. اقتصاد پوهنه، اقتصاد پېژندنه، علم اقتصاد.
وتپک (waṭák) نر.م. گټه وټه، عاید، د سودا گټه.
وتپ کټ (wáṭkaṭ) نر.م. سکیند، جبران، تلافي.

**وټکی**[1] (waṭkáy) نر.م. اوچت ځای، د کوټې په چت کې د لوګي وتلو موری.

**وټکی**[2] (waṭakáy) نر.م. د غره لوړه څوکه.

**وټندوی** (waṭandóy) ص.نر.م. ګټندوی.

**وټه** (waṭá) ښځ.م. ۱) ګټنه، د اسعارو توپیر؛ ۲) عیب و نقص.

**وټی** (waṭáy) نر.م. ۱) د ویالې لوړه برخه چې د هغې لاندې د اوبو ناوه ایښودل شوې وي؛ ۲) څوندی.

**وټیز** (waṭiz) نر.م. وټه ییز، دوټې اړوند، اقتصادي.

**وثوق** (wasū́q) نر.م. مضبوطتیا، اعتماد، باور.

**وثیقه** (wasiqá) ښځ.م. اقرارنامه، دستاویز، سند.

**وج** (waj) نر.م. ۱) وجه، لامل؛ ۲) واګه، لګام، قیزه.

**وجاړ** (wajā́ṛ) ص. نر.م. ویجاړ، وران، ړنګ.

**وجاهت** (wajāhát) نر.م. عزت، رعب، لویي.

**وجب** (wajáb) نر.م. لوېشت.

**وجد** (wajad) نر.م. شوق، جذبه، خوشالي.

**وجدان** (wıǰdán) نر.م. د سلیم عقل د پیدا کولو قلبي ځواک، میندل.

**وجدوحال** (wajdohā́l) نر.م. هغه حالت چې د خدای تعالی په یاد په زړه کې پیدا کېږي

**وجود** (wujū́d) نر.م. ۱) بدن، تن؛ ۲) هستي؛ ۳) میندل کېدنه.

**وجه**[1] (wájha) ښځ.م. څېره، مخ، رخسار.

**وجه**[2] (wája) ښځ.م. دلیل، سبب.

**وجه تسمیه** (wájhatasmıyá) ښځ.م. د نوم ایښودو لامل.

**وجیبه** (wajibá) ښځ.م. وظیفه، تعهد، دین.

**وجیزه** (wajizá) ص. ښځ.م. لږ، لنډ، ګټور.

**وجیه** (wajyá) ص. ښځ.م. ښایست.

**وچ** (wač) ص.نر.م. د لوند ضد.

**وچ په وچه** (wáčpawáča) ق. بې موجبه، بې لامله، بې ښې بدې، برناحقه.

**وچت** (wučát) ص. نر.م. ۱) وګ. اوچت له ټولو صیغو سره؛ ۲) زر زر، په منډه، په تېښته.

**وچتوب** (wăčtób) نر.م. د وچېدو حالت، وچوالی.

**وچتې** (wačáte) ښځ.م. اوچتې، لوېې لوېې خبرې، جګې جګې خبرې، ودیانې.

**وچ ډاګ** (wačḍā́g) ص نر.م. سوځوونکې دښته، وچه صحرا، وچ بیابان.

**وچړ** (wačā́ṛ) نر.م. بلد، اشنا، دوست، ملګری

**وچ سترګی** (wačstárgay) نر.م. بې حیا، بې شرم.

**وچ غاړی** (wačğā́ṛay) ص. نر.م. ۱) ممسک؛ ۲) هغه ډوډۍ چې په لوښي کې بې خوند خراب شوې وي.

**وچکالي** (wačkāĺi) ښځ.م. ۱) سوکړه، ښه فصل نه کېدنه؛ ۲) د اوبو نشتوالی.

**وچ کړس** (wačkṛás) ص. نر.م. ډېر وچ، بالکل وچ، ډېر نري، ډېر نری.

**وچکول** (wačkū́l) نر.م. یو کلن وری.

**وچکلک** (wačklák) ص. نر.م. نری وچکی، ډنګر.

**وچ کلکتوب** (wačklaktób) نر.م. ډنګرتوب.

**وچکه غل** (wačakağál) نر.م. ګنکپ، ټک.

**وچکی** (wačakáy) ښځ.م. ۱) لویه تبه، د محرقې تبه؛ ۲) نری، نړوچکی؛ ۳) یوه کلنه وزه.

**وچکی** (wačakáy) ص.نر.م. خوارکی، وچ کلک، نری نروچکی، نری پری.

**وچ لامده** (wačlāmdá) ص. نر.م. ۱) وچ و لامده؛ ۲) له خرمه، تول له یوه سره.

**وچ لینګی** (wačlingáy) نر.م. وچ لنګی، مانده، کمزوری، بې غوښې.

وچ موری (wačmóray) ص. نر.م. هغه ماشوم چې د مور شودې یې وچې شوې وي.
وچ مېزن (wačmezán) ص. نر.م. نیم وچ، وچوالي ته نږدې.
وچن (wačán) ص. نر.م. د څارویو یوه ناروغي ده.
وچنه (wačána) ښځ.م ۱) وچه، بایر؛ ۲) شنډه ښځه.
وچوب (wačób) نر.م. په لښتي کې د اوبو بندېدل، د اوبو کمي، د اوبو کمېدنه، وچوبی.
وچوبه (wačoba) ص. ښځ.م. للمه، بې اوبه ځمکه.
وچوبیوال (wačobiwal) نر.م. د للمي کروندګر، د للمي څښتن، د للمي دهقان.
وچوړ (wačóṛ) نر.م. وچوالی.
وچ وچکی (wačwačakáy) نر.م. وچ کلک.
وچوکی (wačukáy) نر.م. وچ کرس، کمزوری.
وچول (wačawál) مص.مت. له یو شي نه نم ویستل، بې اوبو کول.
وچولن (wačwlan) نر.م. وچولنه، وچ مینځنه، خشکه شویي.
وچولنځ (wačwlanj) نر.م. وچولن ځای، د وچولن دوکان یا دستګا.
وچ ولنډه (wačolanda) ښځ.م. وچ و لامده، خشک و تر، بحر و بر.
وچولی (wačwúlay) نر.م. تندی، تنده.
وچه (wača) ص.ښځ.م. ۱) للمه، بې اوبو ځمکه؛ ۲) شنډه.
وچه سپوره (wačaspóra) ښځ.م. بېخي سپوره، سپوره ستغه، وچه غاړه.
وچه غاړه (wačağáṛa) ښځ.م. حلق، ستونی.
وچه لمده (wačalamdá) ښځ.م. ۱) غوره ګل؛ ۲) وچه لنده، د دوډۍ یوه اصطلاح ده.
وچې پوچې (wačepúče) ښځ.م. عبث، بې ګټې.
وچېدل (wačedál) مص. ل. ۱) د اوبو ختمېدل، نم بېخي ختمېدل؛ ۲) د ښځې اولاد نه کېدل.
وچې کانګې (wačekānge) ښځ.م. وچه قی، وچ قی، وچې التی.
وځوکی (wajúkay) نر.م. د غنو او لرګیو هغه ګېډۍ چې ښځې یې له غره څخه په خپلو سرونو راوړي.
وڅکه (wácka) ښځ.م. (ج. وڅکې) ممیز، وچ شوی انګور.
وڅکېز (wackéz) نر.م. څکېز، سلام، د خبمې ستن، کمچه، د خېمې متېه.
وحدانیت (wahdanyát) نر.م. توحید، یووالی.
وحدت (wahdát) نر.م. اتفاق، یووالی.
وحشت (wahšát) نر.م. تېری، ظلم، لېونتوب، جنون، سودا.
وحشتناک (wahšatnák) ص. نر.م. تېری کوونکی، ترسناک، وېروونکی، داروونکی.
وحشي (wahší) ص. نب. ځنګلي، غیرمهذب.
وحید (wahíd) ص. نر.م. یو، بې مثال، لاثاني.
وحي (wáhe) ښځ.م. اشاره، الهام، د پېغمبرانو سره د خدای پاک کلام.
وخ (wax) اد. آخ، واخ، د درد او غم غږ.
وخامت (waxāmát) نر.م. بېړنتوب، کړکېچنتوب، وخیم، بحراني.
وخت (waxt) نر.م. وقت، زمانه، دور، ساعت.
وخت تېری (waxtteráy) نر.م. ساعت تېری، وخت تېرونه، ګوزران کونه، ګپ شپ.
وخت تېري (waxtteri) ښځ.م. وخت تېری، وخت تېرونه، ساعتتېري، ګوزران.
وخت ناوخت (waxtnāwáxt) ق. وخت بې وخته، هر ساعت، کله ناکله، کله کله.

وختي (waxtí) ص. نب. د وخته، سهار، ړومبی، پر خپل وخت.

وختینی (waxtináy) ص. نر.م. د ړومبي وخت.

وخچه (waxčá) ښځ.م. گوته، ژوره، ډونگی.

وخله (wáxla) اد. د حیرانتیا او خوشالی کلیمه.

وخیم (waxím) ص. نر.م.ج. کږکیچن، بیهرني، بسخت، مشکل.

وداد (wadā́d) نر.م. دوستي، محبت، مینه.

وداري (wadā́ri) ښځ.م. باداري.

وداع (widā́ʕ) ښځ.م. رخصت، خدای په اماني.

ودان (wadā́n) ص. نر.م.ج. اباد، جوړ شوی.

ودانښت (wadānaṣ̌t) نر.م. ابادي، جوړونه.

ودانول (wadānawә́l) مص. مت. جوړول، ابادول.

ودانه (wadā́na) ص. نر.م. آباده، کورودانه ښځه.

وداني (wadā́ni) نر.م. آبادي، عمارت، تعمیر.

ودانېدل (wadānedә́l) نر.م. ۱)جوړېدل، آبادېدل؛ ۲)د اولاد څښتن کېدل.

ودرول (wadrawә́l) مص. مت. قایمول، ولاړول، ایسارول، درول.

ودرېدل (wadredә́l) مص.ل. ایسارېدل، قایمېدل، درېدل، ولاړېدل.

ودگری (wadgəray) نر.م. واده والا، زوم.

ودل (wadә́l) مص. مت. اوبدل، جوړول.

ودود (wadū́d) ص. نر.م. دوست، مهربان، د الله تعالی صفتي نوم.

ودول (wadawә́l) مص. مت. ۱)نکاح کول، ښځه کول؛ ۲)کورودانول، ناوې کورته راوستل.

وده (wáda) ښځ.م ۱)نمو، ترقي، ښېرازي، لویېدنه؛ ۲)د دم اجازه.

ودېدل (wadedә́l) مص. ل. واده کېدل، د ښځې په نکاح کېدل.

وډ (waḍ) نر.م. ۱)وچ، هغه څمکه چې نوې ریبل شوې وي؛ ۲) غټ، لوی.

ور (war) نر.م. ۱)دروازه؛ ۲)مختاړی یا د غایب لپاره توری، د ظرف توری لکه وررسېدل.

ورا (wrā) ښځ.م. ۱)ورځي، هغه ډله خلک چې ناوې د زوم کورته راولي، واده؛ ۲)ق. لرې، له ورایه ښکارېدنه.

وراباڼ (wrābā́ṇ) نر.م. ورځی، د ورا یو کس.

ورابند (wrābánd) نر.م. رسی، دوري د ترلو پړی.

ورابنی (wrābanáy) نر.م. د اوښ دکتې لرگی.

وراتل (wrātә́l) مص. ل. پورته پورته غورځېدل، دنگل.

وراته (wrātá) ص. نر.م. ۱)وریت شوي؛ ۲)پورته پورته غورځېده.

وراثت (wrāsát) نر.م. ترکه، میراث، ورثه.

وراجه (wrājá) نر.م. ۱)مارگه، دمری بغوتی؛ ۲)څېلی دانه.

وراځه (wrā́já) ښځ.م ۱)دپسرلي باران؛ ۲)یو ډول غټ کونی چې په غوا مېښو پورې نښتی وي.

وراړه (wrārá) نر.م. د ورور زوی، وروړزی.

وراره (wrā́ra) ښځ.م. وروړمې، هغه ښځه چې ورور یې مړ وي.

وراږه (wrāẓá) ښځ.م. ۱) خنزیره، یو ډول دانه چې په څټ کې راخېژي؛ ۲)څربانده، څرمینه، څرمن.

وراسته (wrāstá) ص. ج. وراسته شوي، خوسا شوي.

وراسه (wrāsá) ښځ.م. غړېدنه، گړېدنه، گړهاری.

وراشکی (wrāškáy) ښځ.م. د توري پټی.

وراشه (wrāšá) ښځ.م. په زړه پورې بیان، خبرې اترې، وجیزه، د کانې کرښې.

وراغ (wrāğ) نر.م. کارگه، کاغ، کارغه.

**وراګړی** (waragaṛáy) نـر.م. ورييـز، پـه وراتلونکې، جنجې، ورځې.

**وران** (wrān) نـر.م. ج. ۱) برباد، خراب، ويجاړ؛ ۲) وراني کوونکی، شرير.

**ورانښت** (wrānáṣt) نر.م. وراني، بدي، دښمني.

**ورانکار** (wrānkár) ص. نر.م. وراني کوونکی، ذليل، شرير، شيطان.

**ورانوالی** (wrānwāláy) نر.م. خرابي، وراني.

**ورانول** (wrānawə́l) مص. مت. ختمول، ويجاړول، خرابول، ړنګول.

**ورانه** (wrā́na) ښځ.م. دښمني، مخـالفت، بدي، خرابي.

**ورانه ودانه** (wrā́nawadā́na) ښځ.م. نېکي بدي، ښه بده، جوړه ناجوړه.

**وران ويجاړ** (wrānwijā́ṛ) ص.نر.م. خراب تراب، ړنګ بنګ، وران وجاړ.

**وراني** (wrā́ni) ښځ.م. خرابي، دښمني، اړتيه.

**ورانېدل** (wrānedə́l) مص.ل. له کاره وتل، خرابېدل دښمني جوړېدل.

**ورايه** (wrāyá) ص. لـه لـرې، په فاصله، د نـږدې ضد، د «له» له سربل سره استعمالېږي.

**ورباندې** (warbā́nde) اد. استعلايي يـا پاسنی حالت جوتوي، په هغې باندې، په هغه باندې.

**وربانی** (warbā́ṇay) نـر.م. ورسـاتـونکـی، ور ساتونی، دروازه وان، دروانچي.

**وربخله** (warbaxalá) ښځ.م. اوربخوله، پايځه.

**وربشه** (warbáša) ښځ.م. يو ډول غله، اوربشه.

**وربشينه** (warbašína) ښځ.م. د وربشو مړی، روټه، يو ډول روزي.

**وربل** (warbə́l) نر.م. پېکی، د پېغلې پېڅکې.

**وربلی** (warbaláy) نر.م. اور بخوله، پايځه.

**وربنګ وهل** (warbangwahə́l) مص. مت. ټک وهل، ټنګ وهل، ويشتل، ورپسې منډه کول.

**وربوز** (warbū́z) نـر.م. شونډک، دځناور خوله، د انسان مخ.

**وربوزی** (warbūzáy) نر.م. دروانچي، د دروازې غلام.

**وربويه** (warbū́ya) ښځ.م. جوس، نهـری، ځمکه، کلي ته نېږدې ځمکه.

**وربويي** (warbū́yay) نر.م. غولی، انګړ.

**وربـه** (warbá) نـر.م. وربوزی، دربـان، ورسـاتی، دروازه وان.

**ورپسې** (warpasé) ق. وروسته، شاته.

**ورپکښې** (warpakšé) اد. ۱) ورکـې، د نـنـه؛ ۲) صفت، کونی.

**ورپورک** (warporák) نر.م. د دروازې تمبه.

**ورپورې** (warporé) ق. ورسره خواکې.

**ورپوکل** (warpokə́l) مص. مت. پوکی ورته کول، ورپوکول.

**ورپه زړۀ** (warpazṛə́) ص. چاته ور په ياد، په ياد.

**ورت** (wart) ص. ۱) ارت، سست؛ ۲) نر.م. يو ډول لوبه ده.

**ورتر** (wartáṛ) نر.م. دربند، وربندوونکی.

**ورتګ** (wartág) نر.م. ورتلل، حرکت، چاته ورتلل.

**ورتل**[1] (wartə́l) مص. ل. سپېنسي وربشل، تاوول، ربشل.

**ورتل**[2] (wratə́l) مص. ل. توپ اچول، خېز وهل.

**ورتلل** (wartlə́l) مص. ل. د چا خـواته تګ، چاته ځان رسول، د چا په لور تلل.

**ورتني** (wartani) ښځ.م. د ورته اړوند، تشبيهي.

**ورتول** (wartawə́l) مص. مت. ۱) وريـتـول، نينې کول؛ ۲) سخته ګرمي رسول.

**ورته** (wárta) ص. نب. ۱) مشابه، په مثل، لکه؛ ۲) نر.ج. اوبدلې ورې؛ ۳) اد. لکه، ورته ورایه؛ ٤) ښځ.م. وریته، کباب شوې، نیني شوې.

**ورته مانیز** (wartámāníz) نر.م. نږدې مانیز، قریب المعنی.

**ورته والی** (wartáwā́lay) نر.م. نېږدېوالی، شباهت لرنه، یو شانته.

**ورتینه** (wartiná) ښځ.م. ارتینه، ښځه.

**ورتی** (wartáy) نر.م. ۱) ښایسته، ښکلی، ښکلی اندام؛ ۲) سخاوتمن، زیات، ډېر.

**ورتېدل** (wartedál) مص. ل. ۱) کبابېدل، نینې کېدل؛ ۲) اذیت کېدل.

**ورټ** (wraṭ) نر.م. له ژړا سره استعمالېږي، رټ، د اوښکو جاري کېدل.

**ورټک** (warṭák) نر.م. ورټکول، وروهل.

**ورټ ورټ** (wrā́ṭwraṭ) نر.م. ژړېدنه، مسلسله ژړا، لکه په ورټ ورټ یې وژړل.

**ورټې ورټې** (wraṭewráṭe) ص. د مسلسلو اوښکو توېېدل.

**ورثه** (warsá) ښځ.م. ۱) میراث، ترکه؛ ۲) میراث خواره، خپلوان.

**ورچانې** (warčāne) ق. ورچنې، د باندې، بهر.

**ورچنې** (warčáne) ق. د باندې، د کور نه بهر.

**ورځ** (wraǰ) ښځ.م. له لمر ختو نه تر لمر لوېدو وخت.

**ورځپاڼه** (wraǰpāṇá) ښځ.م. ورځنی خپرونه، ورځنی اخبار، روزنامه.

**ورځ په ورځ** (wrā́ǰpawraǰ) ق. هره ورځ، روزانه.

**ورځ چاری** (wraǰčā́ray) نر.م. ورځنی کار، کوونکی، روزمره کار کوونکی.

**ورځلوی** (wraǰloy) نر.م. قیامت، محشر.

**ورځنی** (warǰanáy) ص. نر.م ۱) روزانه؛ ۲) ورځ په ورځ؛ ۳) ورځپاڼه.

**ورځنې** (warǰané) اد. له هغه نه، ورنه، ورڅخه، ترې.

**ورځول** (warǰawál) مص. ل. توپ وهل، ورتل.

**ورځه** (warǰá) نب. م. د ورتگ امر، لاړ شه.

**ورځي** (warǰí) نر.ج. ورځي، ورا، د ښځو جنج چې د واده په ورځ د ناوې کورته ځي.

**ورڅڅول** (warcacawál) مص. مت ۱) غوړکې څڅول، غوړ ته اچول؛ ۲) لړلړ ورکول.

**ورڅخه** (warcáxa) اد. ترې، ځنې.

**ورڅک** (warcák) نر.م. ورسک، پوزه، څوکه.

**ورڅېرمه** (warcérma) ق. نېږدې، جوخت، ورڅرمه، ورپلوته، ورڅېلمه.

**ورخ** (warx) نر.م. له ویالې څخه د اوبو د لښتې د بېلېدو ځای، وتی، دهنه، ویالې دهنه.

**ورخاړی** (warxaṛáy) نر.م. ۱) یو ډول سابه؛ ۲) د ځارویو یو ډول ناروغي؛ ۳) لاړجن، د طبخ ناروغي.

**ورختل** (warxatál) مص. مت. پرچا حمله کول، وراوچتېدل، په کور ورختل، چاپه غورځول.

**ورختن** (warxatan) ق. ورغونډېدل، تجمع، سره تولېدل.

**ورخته** (warxáta) ښځ.م. ۱) حمله، چېرچاړ، تېری؛ ۲) نر.م. و.گ. ورختل.

**ورختې** (warxáte) ښځ.م.ج. ورانې، مستې.

**ورختی** (warxátay) ص. ورختلی، حمله کوونکی، تعرض کوونکی، تېری کوونکی.

**ورخړل** (warxaṛál) مص. ل. ۱) ورباندې بهېدل؛ ۲) نس ناسته.

**ورخړه** (warxā́ṛa) ښځ.م. خځله، خشاک، لرگي.

ورخیړه (warxíṛa) ښځ.م. له کرکې نه ډکه خبره.
ورخېزه (warxéza) ښځ.م. هغه څمکه چې اوبو ته نېږدې وي.
ورخیمځه (warxímʒa) ښځ.م. تنکۍ غرمه.
ورد (wırd) نر.م. وظیفه، ورځني کارونه.
وردانګل (wardāngál) مص. مت. ورتوپ کول، ورتوپ وهل، ورغورځېدل، ورمنډه کول.
وردي (wardi) ښځ.م. د عسکرو لباس.
وردول (wardawál) مص. مت. جدا کول، شلول.
ورډېدل (wardedál) مص.ل. ۱) ولاړېدل، جګېدل؛ ۲) خپلوکې جلا کېدل، جامې شلېدل.
ورړز (warṛáz) نر.م. مرز، بتهړ، نمرز.
ورزش (warzíš) نـر.م. وجود ته مسلسل حرکت ورکونه، مشق، سپورت، تمرین.
ورزشکار (warzıškār) نر.م. لـوبغاړی، تمرین کوونکی، ورزش کوونکی، سپورت مین.
ورزل (warzál) مص. مت. میده میده کول، ورژل، قیمه کول، ټکول، ریچې کول.
ورزو (warzó) ښځ.م. کرکه، نفرت.
ورزول (warzawál) مص. مت. ۱) میده میده کول، قیمه کول، ټکول؛ ۲) ډنګول، اوچتول.
ورزووند (warzowand) نـر.م. کرکجن، کرکي، وېزار، متنفر.
ورزېدل (warzedál) مص. ل. میده کـېدل، قیمه کېدل. ټکېدل، ریچېکېدل.
ورژا (waržā́) و ګ. ورزا.
ورژل (waržál) مص. مت. ژوبلول، و ګ. ورزل.
ورژوني (waržúnay) نـر.م. د لېټۍ په څـېر د خوراک یو ډول دی.
ورږ (wraẓ) نـر.م. ۱) د آس د څټ ویښته، یال؛ ۲) خوړږ، پوستکی، څرمن.

وروږه[1] (wráẓa) ښځ.م. زغـانځـه، ورږه، یوه حشره چې تور رنګ لري.
ورږهٔ[2] (warẓa) نر. م. ورګه، اروږه، اوروږه.
ورساتوني (warsātúnay) نـر. م. د دروازې څوکیدار، ورساتی، قابچي، دربان.
ورستن (wrastan) ښځ.م. برستن، تلتکه، لحاف.
ورستنول (warstanawál) مص. مـت. بېـرته ورلېږل، بېرته ورکول، ورواپس کول.
ورستنېدل (warstanedál) مص.ل. بېرته ورتلل، بېرته ورګرځېدل، ورواپس کېدل.
ورستني (wrastanáy) ص. نـر.م. وروستنی، اخیرنی، اخیری، پاتې، وروستی.
ورستو (wrastó) ق. وروسته،شاته،پاتې، اخیري.
ورستوالی (wrastwā́lay) نر.م. زوړوالی، خوسا والی، خرابوالی.
ورستول (wrastawál) مص. مت. خوسا کـول، بې ځایه کول.
ورسته (wrásta) ص. ښځ.م ۱) خسا،ګنده؛ ۲) ق. و ګ. وروسته۲)؛ ۳) متاع، شتمني.
ورستېدل (wrastedál) مص. ل. خسا کېدل، ګنده کېدل.
ورسره (warsará) اد. ۱) نـېږدې نـېږدې؛ ۲) ق. خوا په خوا، سره یو ځای.
ورسک (warsák) نر.م. ۱) وربوز، د مخ راوتلې برخه؛ ۲) د غره راوتلې برخه.
ورسۍ (wursáy) ښځ.م. کړکۍ، اورسۍ.
ورشاړی (wuršaṛay) نـر.م. اورشـاړی، چقمق، توپک، پلته یي ټوپک.
ورشکۍ (wrašakáy) ښځ.م. د توري پوښ، د توري تېکی، د توري پټی.
ورشکې (wraške) ښځ.م. اوښکې، اشک.

**ورشمی** (waršamáy) نر.م. شومه، د مړي روح ته د ثواب بښلو لپاره د لومړۍ شپې خیرات.

**ورشنډ** (waršánd) نر.م. وربوز، ورسک.

**ورشو** (waršó) ښځ.م. څرځای.

**وربښ** (wraṣ) نر.م. ۱)ورمه، نری باد، الوېښ، شمال ۲)ورو، د آس په ورمېږه ولاړ وېښته.

**وربښت** (waráṣt) نر.م. ورېدنه، ورینګي، باران.

**وربښکی** (wriṣkáy) نر.م. ۱)کوپړی؛ ۲)لړزه تبه.

**وربښکۍ** (wraṣkáy) ښځ.م. تسمه، اوږده نری تونه.

**وربښودل** (warṣodə́l) مص. مت. ښکاره کول، ور زده کول.

**وربښوول** (warṣowə́l) مص.م. وربښودل.

**وربښیل** (warṣayə́l) مص.مت. وربښودل.

**ورغ** (wraǧ) نر.م ۱)هوښ، حواس؛ ۲)ایمانداري.

**ورغاست** (warǧast) نر.م. حمله، یرغل، برید.

**ورغاستل** (warǧástal) مص.ل.حمله کول، برید کول، یرغل کول.

**ورغالی** (wurǧā́lay) نر.م. نغری، دېګدان.

**ورغاڼی** (warǧāṇáy) نر.م ۱)خمیره، د غنمو اوړه ۲)هغه خمیره شوي اوړه چې د نوي زېږېدلي ماشوم د پاکوالي لپاره یې استعمالوي.

**ورغړ** (warǧə́r) نر.م. په اوبو کې ژور ځای.

**ورغړنه** (warǧaṛána) ښځ.م. د اوښ او خره د غورځېدو ځای.

**ورغړی** (warǧə́ṛay) نر.م. د اوبو تل، د اوبو بېخ.

**ورغستل** (warǧastə́l) مص. مت. ورغاندل، ټکول، دل کول.

**ورغستلی** (warǧastalay) مف. ټکول شوی، دل شوی.

**ورغندل** (warǧandə́l) مص. مت. ور لاندې کول.

**ورغومی** (warǧū́may) نر.ج. مرغومی، د چېلۍ بچی، چېلوکی، چیله کی.

**ورغوی** (warǧə́way) نر.م. تلی، د لاس تلی.

**ورغۍ** (wurǧáy) ښځ.م. لوی تورکی، دلوګي هغه برخه چې د کوټې په چت پورې نښتې وي.

**ورق** (waráq) نر.م. صفحه، پاڼه.

**ورک** (wrak) ص. نر.م. پټ، نه ښکارېدونکی، نه پیداکېدونکی، ضایع.

**ورکاوی** (wrakāwáy) نر.م. ورکېدنه، له منځه تلنه، بې درکه کېدنه.

**ورکړه** (warkṛá) ښځ.م. خیرات، صدقه، بخښنه.

**ورک لاری** (wraklā́ray) نر.م. ورک شوی، بېدرکه، هغه سړی چې لاره یې ورکه کړې وي.

**ورک لېونی** (wraklewanáy) ص.نر.م. سخت مین، عاشق، شیدا.

**ورک مانی** (wrakmā́nay) ص. نر.م. خنده نی، ټوکي، بشاش، مسرور.

**ورک مرغه** (wrakmarǧá) نر.م. یو خیالي مارغه، سیمرغ(عنقا).

**ورک نومی** (wraknū́may) ص.نر.م. نوموړکی، بې نام و نښان، ګمنامه.

**ورکوزول** (warkozawə́l) مص.مت. ورکښته کول، لاندې وروستول.

**ورکوزېدل** (warkozedə́l) مص.ل. ښکته ورتلل، ورښکته کېدل، لاندې ورتلل.

**ورکول**[۱] (wrakawə́l) مص. مت. پوپناه کول، ضایع کول، بې درکه کول.

**ورکول**[۲] (warkawə́l) مص.مت. ۱)بخښل، ادا کول، ترسره کول؛ ۲)صادرول.

**ورکه**[۱] (wráka) ښځ.م. ورکه شوې، بې درکه.

**ورکه**[۲] (wárka) ف. د ور یې کړه، لنهون.

ورکېدل[1] (wrakedál) مص. ل. پوپناه کېدل، لا درکه کېدل، ضايع کېدل، له منځه تلل.
ورکېدل[2] (warkedál) مص.ل. ورکړې کېدل، ورکول کېدل، تسليمول، سپارل، حواله کول.
ورګ (warg) نر.م. ۱) وړی؛ ۲) يو کلن اوښ؛ ۳) پنځه کلن ګډ يا پسه.
ورګډ (wargáḍ) نر.م. سره يو ځای، شامل.
ورګډول (wargaḍawál) مص. مت. وريو ځای کول، شاملول.
ورګډې (wargáḍe) ص.ښځ.ج. و ګ. ورګډ.
ورګړ (wargáṛ) نر.م. دخوسا پانو سره (sərá)، ډېری يا انبار.
ورګن (wargán) نر.م. وړی رېښنه، پشم وربشنه.
ورګه[1] (wargá) ښځ.م. ۱) د غوړونو پوځکی؛ ۲) نر.م. د نوي لنګي غوا کنډ، اولنی شودې.
ورګه[2] (wrága) ښځ.م. ورره، يوه خزنده، کيک.
ورګينه (wargína) ښځ.م.سربانډې، دځرمنې پړی.
ورلاندې (warlánde) ق. ورکښته، ورکوز.
ورلول (warlawál) مص.مت. حامله کول، بلاربول.
ورله (warlá) ص. ښځ.م. ۱) حامله، بلاربه؛ ۲) اد. ورله، ورته.
ورله انا (warlaaná) ښځ.م. د نيا مور، دنيا نيا.
ورلېدل (warledál) مص. ل. بلاربېدل، ورله کېدل.
ورم[1] (warám) نر.م. پړسوب، اماس، باد.
ورم[2] (wárm) نر.م. نصيحت، پند، وعظ.
ورمارګه (warmārgá) نر.م. اومارګه، مرداره دانه، د کوچنيانو يوه ناروغي ده.
ورماند (warmand) نر.م. ورم کوونکی، نصيحت کوونکی، واعظ.
ورمليک (waramlik) نر.م. پندنامه، نصيحت نامه.
ورمند (warmand) نر.م. امر، اډر، کومانده.
ورمنددود (warmanddod) امري دود، د کړ يو ګرداني اړخ، د امر صيغه.
ورمندون (warmandun) نر.م. دربمګړتوب، قضاوت، محاکمه.
ورمندن (warmandan) نر.م. نصيحت، پند، لاربښوونه.
ورمنديز (warmandiz) نر.م. د ورمند يا ورمندون اړوند، امري، حکمي.
ورموال (waramwal) نر.م. و ګ: ورماند.
ورمولی (warmúlay) نر.م. د کوچنيانو يوه ناروغي ده چې د هغې له امله يې د ستونه کېږي.
ورمېږ (warméẓ) نر.م. ځټ، ځټ مېږی.
ورنداره (wrandára) ښځ.م. ورندار، د ورور ښځه.
ورندی (wrandáy) نر.م. ډېر وربدونکی، په شېبو شېبو وربدونکی.
ورنډه (wurandá) ښځ.م. ګنه ګوڼه، ناڅاپي حمله.
ورنه (warná) اد. ورځني، ورڅخه، له دغه.
ورنښ (warníṣ̌) نر.م. وارنش، وارنيش، د دروازو او کړکيو د رنګولو يو ډول غوړ رنګ.
ورنکی (wrankáy) نر.م. ۱) د ورانه هډوکی، د پتون هډوکی؛ ۲) د زنګانه سترګه، وراني.
ورنګی (wrangáy) نر.م. نرم باران، نری باران.
ورنيکه (warníka) نر.م. د نيکه پلار، غورنيکه.
ورڼ (wráṇ) نر.م. ۱) تابوت، جنازه؛ ۲) سېلاب وړی.
ورو (wró) ق. ص. په کرار، په آرام، په مزه.
وروځه (wrúja) ښځ.م ۱) دسترګو دپاسه وېښتان، ابرو؛ ۲) د مېږو سپږه، کنه.
وروور (wrór) نر.م. د مور و پلار زوی.
وروورانه (wrórāná) وروور ګلوېز.

**وروړ عزيز** (wrorṣzíz) نر.م. خپل خپلوان، خپل پردي، يار و اشنا.

**وروړکی**[1] (wrorkáy) نر.م. وروړ ک، روکی، د وروړ تصغير نوم.

**وروړکی**[2] (wurwurakáy). نر.م. ۱) سراب؛ ۲) اوراوړکی، هغه الوزونکې حشرې چې د شپې لـه خوا له ځانه رڼا خپروي.

**وروړ گلوي** (wrorgalwí) ښځ.م. وروروړلي، راشه درشه، دوستي.

**وروري** (wrorí) ښځ.م. ۱) وروروړلي؛ ۲) داومې خرمنې تسمه؛ ۳) په غره کې دښارويو پناه ځای.

**وروريز** (wroríz) نر.م. وروړانه، وروړ گلويز.

**وروړل** (warwṛál) مص.مت. چـاته ورووړل، چـاته رسول.

**وروست** (wróst) ص.نر.م. خوسا او خراب شوی.

**وروستاړی** (wrūstáṛay) نـر.م. ۱) وروستـنی، اخيرنی؛ ۲) لاحقه.

**وروستنی** (wrūstanáy) ص.نر.م. د وروستاړی، اخرې، آخرينی.

**وروستول** (wrostawál) مص.مت. خرابول، زړول، استعمالول، خساکول.

**وروستوالی** (wrostwálay) نر.م. گنده والی، خسا والی، خرابوالی.

**وروسته** (wrū́sta) ق. وروستو، بيا، پس، پاتې.

**وروسته پاتې** (wrustapāte) ص. ښځ.م. شاته پاتې، نه پرمختللی، نامترقي.

**وروسته والی** (wrustawálay) نر.م. شاته والی، پاتېوالی.

**وروستی** (wrustáy) نر.م. شاتنی، اخرنی.

**وروستی بڼه** (wrustaybaṇa) ښځ.م. آخري بڼه، نهايي شکل.

**وروغ** (wroğ) نر.م. کارغه، وراغ، کاغ، کارگه.

**وروول** (warawál) مص. مت. د باران د څاڅکو په څېر توېول، گوزارول.

**ورون** (wrūn) نر.م. ادوم، پتون.

**ورونی** (wruṇay) نر.م. (ج. وروني) اورنی، رونی، هغه تهوته چې کوچنی پکې تړل کېږي.

**ورونه** (wrū́ṇa) نر.ج. د يوه پلار زامن.

**ورو ورو** (wrówró) ق. په کراره کراره، په مزه مزه.

**ورهنگر** (warhaṇgar) نر.م. ورهنه گر، کسبگر، پېشه ور.

**ورهنه** (warháṇa) ښځ.م. کسب، شغل، کار، چار.

**ورهول** (warhawál) مص. مت. خلاصول، آزادول.

**ورهيسته** (warhísta) ق. اخواته، له لرې، ورايسته.

**ورهېدل** (warhedál) مص. ل. آزادېدل، خلاصېدل.

**وری**[1] (wáray) نر.م. د بارووړونکو حيواناتو بار.

**وری**[2] (wúráy) نر.م. ۱) دمېږې بچی؛ ۲) د لمريز کال لومړی مياشت.

**وری** (woráy) ښځ.م. ۱) اوری، بيره؛ ۲) د مېږې ښځه بچی.

**وريا** (waryá) ښځ.م. ۱) باران، شيگـره، ورينگې؛ ۲) ص. ښځ.م. ۱) حاشيه؛ ۲) ډېر لېرې.

**وريت**[1] (writ) ص.نـر.م.ج. ۱) په اور کـباب شـوی؛ ۲) سوځېدلی؛ ۳) قهرېدلی.

**وريت**[2] (waryat) نر.م. ښکاره، خرگند، جوت.

**وريت پيت** (writpip) ص. ۱) ډېـر قهـرېـدلـی؛ ۲) سختې گرمۍ وهلی.

**وريتول** (writawál) مص. مت. ۱) په اور پخول، نينې کول.

**وريته** (writá) ښځ.م. په اور کباب شوې غوښه.

**وريته** (wréta) ښځ.م. ښکاره، خرگنده، جوته.

**وريته گر** (writagár) نر.م. کبابي، کبابچي، وريتی.

وريتې (writé) ص. ۱) ورتې شوې؛ ۲) دوريتــو غوښو مېلمستياوې.
وريتېدل (writedál) مص. مت. ۱) په اور پخېدل، نيني کېدل؛ ۲) غوسه کېدل.
وريجې (wríge) ښځ. ج. برنج، يو ډول غله.
وريځ (wreǰ) ښځ. م. په اسمان هغه لړې چې باران ترې ورېږي.
وريد (waríd) نـر. م. هغه رګ چې له بدن څخه وينه راتولوي او زړه ته يې رسوي.
ورېدل (waredál) مص. ل. ۱) راکښته کـېدل، باران ورېدل، واوره ورېدل؛ ۲) تـل يادېدل، همېشه په زړه کېدل.
وريدل (wridal) مص. مت. غوړېدل، پراخېدل، وده.
ورېرونه (wrerúna) نر. ج. د ورور زامن.
ورېره (wrerá) ښځ. م. د ورور لور.
ورېړن (wreṛán) نـر. م. هغه تکېدلي وری چې د لمخي دجوړولو لپاره يې هواري اچوي.
وريژون (wrižun) ق. رژېدل، ببلېدل، توېدل، اوربنت.
ورېسل (wresál) مص. مت. و ګ. ورېشل.
ورېشپر (wrešpár) نر. م. ۱) د ځمکې حاصل؛ ۲) ډېر غالمغال، شورماشور.
ورېشل (wrešál) مص. مت. د وړيو ښتل او تاوول.
وريشه بر (wrišabar) نـر. م. اذوقـه، توښـه، خواړه.
ورېښم (wreṣám) نر. م. ج. ريښم، ابريشم.
ورېښمين (wreṣmín) نر. م. له ورېښمو نه جوړ.
ورېښه (wreṣá) ښـځ. م. په مړي پسې د جمعې د شپې خيرات.
ورېغ (wreǧ) نر. م. ج. رنګ.
ورين (wrin) ص. نرم. ويال، ارت، خلاص.

ورين تندی (wrintandáy) نر. م. خلاصه تنده، وياله تنده.
ورينداره (wrindára) ښځ. م. وريندار، د ورور ښځه.
ورينګی (wringay) نر. م. نري باران، شبګره.
وړ (waṛ) ص. نر. م. ۱) جوګه، لايق، قابل، مناسب؛ ۲) نر. م. زورور، په حق، بې ګناه؛ ۳) څه ډول.
وړاندنی (wṛandanáy) ص. نر. م. مـخکېنی، پخوانی، مخکې، ځنډنی، لرغونی.
وړاندې (wṛánde) نر. م. مخکې، ړومبنی.
وړانديز (wṛandiz) نـر. م. مخبـنود، پېشنهاد، تجويز.
وړانديـزي (wṛandizi) ښـځ. م. مخبـنـودي، پېشنهادي، تجويزي.
وړاندوينه (wṛandwayana) ښـځ. م. مخـوينـه، پېشګويي، پېش بيني.
وړاندېينه (wṛandeyana) ښځ. م. وړاندې کونه، عرضه، ارايه، تقديم.
وړانګن (wṛangan) نر. م. و ګ: وړنګن.
وړانګه (wṛánga) ښځ. م. پلوشه، رڼا، ځريکه.
وړانه (wṛána) ښځ. م. د وړکېدو حالت، بې ګناهي.
وړانه پړانه (wṛánapṛána) ښځ. م ۱) حق ناحق؛ ۲) ګټه او تاوان.
وړتوب (waṛtób) نر. م ۱) لياقت، توانايي؛ ۲) ګټه برياليتوب، غلبه.
وړښتی (wṛaṣtay) نر. م. غرنی بادام، ورغښتی، د بادام ونې ته ورته د يوې ونې نوم دی.
وړکينه (waṛakína) ص. ښځ. م. کمکينه، وړه نجلۍ.
وړکی (waṛakáy) ښځ. م. مـاشـومـه، کم عمـره جلۍ.
وړګينه (waṛgína) ښـځ. م. پشمينه، وړينه، لـه وړيو جوړه رسۍ، وياسته.

وړل (wṛal) مص. مت. ۱) يو شی له څپله ځايه بل ځای ته انتقالول، رسول، اوچتول.
وړل راوړل (wṛalrāwṛál) مص. مت. چغلي کول، و ګ. وړل.
وړم (waṛóm) ق. تېر، وړم کال، لا تېر کال.
وړمه شپه (waṛmašpá) ښځ. م. له تېرې شپې نه اخوا شپه.
وړمه ورځ (waṛmawráǰ) ښځ. م. له تېرې شپې مخکې ورځ.
وړنګن (wṛangón) ص. نـر. م. ځلېدونکی، رڼا کوونکی، وړنګين.
وړنګه (wṛangá) ښځ. م. وړانګه، پلوشه، شغله.
وړنګی (wṛangáy) ص. رنګی، رنګړی، ړنګی.
وړوپړ (waṛupaṛ) نر. م. ملامت و سلامت، ملامت و ناملامت.
وړوکتوب (waṛūktób) نر. م. وړکتوب، وړوکوالی ماشومتوب، وړوکتيا.
وړوکی (waṛúkay) نر. م. کمکی، کوچنی.
وړول (waṛawál) مص. مت. ميده کول، ريچې کول.
وړومبنی (wṛumbanáy) ښځ. م. مخکې، تېره شوې، اولنی، لومړنی.
وړمبنی (wṛumbanáy) ص. نر. م. ړومبی، مخکې، تېر شوی، لومړنی.
وړومبی (wṛumbáy) ص. نر. م. مخکينی، پخوانی.
وړه (waṛá) ص. ټيټکی، لنډکی، وړوکې ماشوم.
وړونی (waṛawū́nay) نر. م. غوړاسکی، يوه غرنی ونه.
وړی (waṛáy) ښځ. ج. پشم، د مېږو وړی.
وړيا (waṛyā́) ص. نـب. ۱) بې قيمته، مفت، بې پيسو؛ ۲) ارزان.
وړياخور (waṛyaxor) نر. م. تيارخور، مفتخور.

وړين (waṛín) ص. نر. م. ج. پشمي، له وړيو جوړ.
وړې (waṛé) ښځ. ج. د وړيجو ميده ګي.
وړې وړې (waṛéwaṛé) ص. نر. ميده ميده.
وز (waz) نر. م. چېلی، نر چېلی، وزګوری.
وزارت (wızārát) نر. م. د وزير دنده، د وزير کار.
وزده (wázda) ښځ. م. وازده، وازګه، چربي.
وزر[1] (wazár) نر. م. ۱) بال؛ ۲) بازو؛ ۳) د کتاب پوښ، پښتي.
وزر[2] (wūzar) نر. م. غمشريکي، غمرازي.
وزغان (wazğā́n) نر. م. غوزان، چارمغز، متېک.
وزغونه (wazğóna) ښځ. م. د وزو وېښته، وژغنې.
وزګار (wazgā́r) ص. نـر. م. بې کاره، بې کسبه، بې روزګاره.
وزګارتيا (wazgartyā́) نر. م. بې کاري، وزګارتوب.
وزګارېدل (wazgāredál) مص. ل. بې کاره کېدل، فارغېدل، له کار نه خلاصېدل.
وزګړی (wazgáṛay) نر. م. سېرلی، بکری، چېلی.
وزلوبه (wazloba) ښځ. م. د وزې لوبه، بزکشي.
وزله (wázla) ښځ. م. ۱) پلمه؛ ۲) چاره، وسيله.
وزم (wázam) نر. م. ۱) قصد، اراده؛ ۲) سر، ترنګ، تنګ، وزن، خوش آوازي، طرز.
وزمکه (wazmáka) ښځ. م. سپوږمۍ، وږمکه.
وزمه (wázma) اد. وشمه، ډوله، وزن، طور، څېر، مثال، په څېر، لکه.
وزن (wazán) نر. م. جاج، تـول، اندازه؛ ۲) شيره؛ ۳) عزت؛ ٤) بوج؛ ٥) مقدار؛ ٦) د عروض په علم کې د شعر بحر.
وزنه (wazná) ښځ. م. لـه شيشې يا له کاني څخه جوړ شوی څيز چې په دفترونو کې يې په کاغذونو ږدي.
وزني (wazní) ص. نر. م. وزن لرونکی، درونـد.

وزه (wazá) ښځ.م. چېلی، بزه، بېزه.
وزیر (wazír) نر.م. ۱)د یو وزارت مشر؛ ۲)د شطرنج یوه دانه؛ ۳)د پښتنو د توکم یوه قبیله.
وزیره ګوته (waziragwáta) ښځ.م. خنځه ګوته، د لاس د منځنۍ او کوچنۍ ګوتې ترمنځ ګوته.
وزېمه (wazéma) ښځ.م. سېرلی غوښتونکې وزه.
وزیي (wuzyí) ص. نر.م. وزې ته منسوب لکه وزیي غوښه، وزیي پوټکی.
وژغنې (wužğáne) ښځ.م. د وزو ویښتان، وزغنی.
وژغنیز (wužğaníz) ص. وزغنیز، د ګډو او وزو له وېښتانو څخه جوړ شوی څیز.
وژل (wažál) مص. مت. قتل کول، مړ کول، خون کول، وژنل، قتلول، وژلل.
وژله (wážla) نر.م. قتل، مرګ، وژنه.
وژلی (wažálay) ص.مف. مړ کړی شوی، قتل شوی.
وژم (wažám) نر.م. د خوشالۍ شبیه یاحالت.
وژمدار (wažamdár) نر.م. پاګل، مضطرب.
وژمکی (wažmakáy) ښځ.م. سپوږمی، وږمی.
وژنشمېر (wažanšmer) نر.م. د مړینې شمېره، د مړو شمېره، د قتل و قتال سرشمېرنه.
وژه (wažá) ښځ.م. د څټ پله، کلک او تړونکی عضلي تارونه، لېګامنتونه.
وږبی (ważbay) ښځ.ج. کاغه، سمندري کاغه، پنګوین.
وږد (wużd) ص. نر.م. اوږد، ډېنګ.
وږدغوږی (wużdğwáżay) نر.م. ځېږغوږی، پېږ غوږی، لوی غوږی، پلن غوږی.
وږدوالی (wużdwálay) نر.م. اوږدوالی، طوالت.
وږدول (wużdawál) مص. مت. راکښل، لویول، طوالت ورکول، غځول.
وږسترګی (ważstárgay) ص. نر.م. وږې سترګې لرونکی، حرصي، حریص، تمه لرونکی.
وږم (wáżam) نر.م. ۱) بوی؛ ۲)خوسا او بدبوی.
وږمکی (ważmakáy) ښځ.م. وږمی، وږمکه. سپوږمی، وژمکی، وزمکی.
وږمه (ważmá) ښځ.م ۱) یخه هوا، نری باد؛ ۲) علامه.
وږی (wáżay) نر.م. ۱) وښکالی، واښکی؛ ۲) د لمریز کال شپږمه میاشت.
وږی (wáżay) نر.م. نهر، نهار، تش نسی، چې په معده کې یې خواړه نه وي.
وږی (wūżáy) ښځ.م. اوږی، د غاړې ګانه.
وږیځاند (wazicand) نر.م. وږیځاندی، وږیځاڼ، وږیځانی، خوشه چین.
وږیځاندي (wazicandi) ښځ.م. وږیځاني، وږي غونډونه، خوشه چیني.
وس (was) نر.م. ۱)طاقت، کوښښ، زور، واک، اختیار؛ ۲)څیز.
وس (wus) ق. اوس، دا وخت، دا ساعت.
وساطت (wasātát) نر.م. ۱)واسطه، ذریعه، وسیله؛ ۲)منځګړتوب.
وسایل (wasāyál) نر.م. د وسیلې جمع، وسیله.
وسپنباب (waspanbab) نر.م.ج. وسپنیز لوښي، وسپنیز اوزار، وسپنیز الات.
وسپنپرېکند (waspanprekand) نر.م. وسپنه غوڅوونکی، اهن بر.
وسپنپلور (waspanplor) نر.م. وسپن پلورنه، د وسپنې هټۍ، اهن فروشي.
وسپنپلوری (waspanploray) نر.م. وسپنې والا، وسپنه خرڅوونکی، اهن فروش.
وسپنپېر (waspanper) نر.م. د وسپنې دوره، دوره اهن.

**وسپنڅادر** (waspancadar) نر.م. ترامه، اهن چادر.

**وسپنخړی** (waspanxáṛay) نر.م. د اوسپنې زنګ، د اوسپنې خیرې.

**وسپن خور** (waspanxór) نر.م. برجي کانی، هغه کانی چې تبرګي او چړې ورباندې تېره کوي.

**وسپن خوره** (waspanxorá) ښځ.م. د اوسپنې زنګ، مچه خور، مچه خورک.

**وسپنکښ** (waspankáṣ) نر.م. اهن ربا، سپنښ، د وسپنې د کان کارګر.

**وسپنکښي** (waspankaṣi) ښځ.م. اهن ربايي.

**وسپنويلګر** (waspanwilgar) نر.م. وسپن ويلوونکی، د وسپنې ذوبوونکی، اهن ذوب کن.

**وسپنويلوب** (waspanwilob) نر.م. وسپنويلون، د وسپنې ويلونه، د اوسپنې ذوب.

**وسپنه** (wáspana) ښځ.م. آهن، معدني فلز.

**وسپنهوډی** (waspanhoday) نر.م. د کلکې ارادې خښتن، د ټینګ عزم خښتن.

**وسپنيز** (waspaniz) نر.م. ۱) اوسپنيز، وسپنې والا؛ ۲) د کلکې ارادې خښتن، مضبوط.

**وست** (wast) نر.م. ۱) ګټه؛ ۲) متاع، سامان.

**وستار** (wastár) نر.م. بنجاره ګر، سیمسار.

**وستکار** (wastakár) نر.م. استکار، هغه کسان چې په ځینو کسبونو کې مهارت لري.

**وستل** (wastál) نر.م. مقام، ځای، د غونډې ځای، ډبه، صوفه.

**وستناک** (wastnā́k) ص.نر. خوشحاله، خوښ.

**وستون** (wastū́n) نر.م. زېرمه تون، تحويلخانه، د مال ځای.

**وسته** (wastá) ښځ.م. ۱) ډنډ، تالاو؛ ۲) موضوع؛ ۳) بند.

**وستیانی** (wastyānáy) نر.م. اخیري، ختمېدونکی.

**وسط** (wasát) نر.م. منځ، مرکز.

**وسعت** (wassát) نر.م. ارتوالی، پلنوالی، لویوالی.

**وسکه** (wáska) ق. ځکه نو، ځکه چې، ولې چې، بهشکه، خو، مګر.

**وسله** (waslá) ښځ.م. اسلحه، د جګړې اوزار.

**وسله وال** (waslawā́l) ص.نر.م. وسله لرونکی، مسلح.

**وسلېدل** (wasledál) مص.ل. ماتېدل، شلېدل.

**وسمن** (wasmán) ص.نر.م. قادر، زورور، اختیارمن.

**وسمه** (wasmá) ښځ.م. د نیل پاڼې چې وېښته پرې تورېږي.

**وسواس** (waswā́s) نر.م. وهم، وسوسه، شک.

**وسواسه** (waswāsá) ښځ.م. پرېشاني، تشویش.

**وسه** (wasá) ښځ.م. ۱) برسات، پشکال، باران؛ ۲) ځواک، توان، طاقت.

**وسيع** (wasíʿ) ص. ارت، پراخ، پلن.

**وسيله** (wasilá) ښځ.م. سوب، ذریعه، سبب.

**وسيم** (wasím) ص. ښکلی، ښایسته، ډولي.

**وش** (waš) نر.م. ۱) وده، ترقي؛ ۲) زهر؛ ۳) دغم او درد ښکاره کولو حرف.

**وشتمار** (waštmā́r) ص.نر.م. ۱) تحریک پیدا کوونکی، بېداروونکی؛ ۲) توکمار.

**وشتول** (waštawā́l) مص.مت. رابلل، بېدارول، تحریکول.

**وشته** (wášta) ښځ.م ۱) توکه، مزاح؛ ۲) المسونه.

**وشتي** (wášti) نر.م. توکي، توکمار، وشتمار.

**وشم** (wášam) اد. طور، څنګه چې، لکه، په څېر.

**وشمه** (wášma) ص.نب.و.ګ. وشم.

**وشن** (wašán) ص. بالغ کېدو ته نیږدې.

**وش و وده** (wašuwada) ښځ.م. وده او لویښت، وده او نمو، نشو نما.

**وښه** (waṣá) ښځ.م. ۱) ثانده څانگه؛ ۲) شهپر.

**وښ** (waṣ) نر.م. زهر، سم.

**وښبه** (waṣbá) ص. نر.م. واښه خوړونکی، واښه والا، واښه پلورونکی.

**وښته** (waṣtá) ښځ.م. ۱) کاره، یو ډول غړنۍ وربجې؛ ۲) گل مهره او مرجان چې د ښځې گانه دی.

**وښتې** (waṣté) ښځ.م. ۱) اشاره، استنباط؛ ۲) یو ډول وربجې.

**وښخور** (waṣxór) ص. نر.م. ۱) وښوری، واښه خورونکی حیوان؛ ۲) د مال هغه بچی چې نوی په وښو خوړلو راغلی وي.

**وښکالی** (waṣkálay) نر.م. د انگورو گانگی، گانگوری، غانگی، واښکی، گنگوری.

**وښکل** (waṣkál) مص. مت. ۱) وکښل، ایستل، بهر کول؛ ۲) لیک کول؛ ۳) وباسل، وکاږل.

**وښکه** (waṣká) ښځ.م. اوښکه، ووښکه، هغه اوبه چې د درد او غم پر مهال له سترگو راځي.

**وښکی** (wáṣkay) نر.م. ۱) د خولې یو اړخ، د خولې کنج؛ ۳) وښکالی.

**وښن** (waṣan) نر.م. زهرجن، زهرژلی، زهرلړلی، په زهرو ککړ.

**وښند** (waṣánd) ص. نر.م. ۱) تانډې، ښېرازه؛ ۲) هغه سړی چې د ملا کورولی نه لري.

**وښوری** (waṣóray) نر.م. و.گ. وښخور.

**وښی** (waṣáy) نر.م. ۱) د لاسو یو ډول گانه، باهو، کړی، کړه؛ ۲) داوسپنې کړی.

**وښیانه** (waṣyāná) ښځ.م. وښیانه، شنه ځمکه، ورشو، څړځای.

**وښېدل** (waṣedál) مص.ل. ۱) د ښویېدل ناسمه بڼه، تېروتل، تېروتنه؛ ۲) کمزوری کېدل.

**وصاف** (wasáf) نر.م. ثناخوان، صفت کوونکی.

**وصال** (wisál) نر.م. ۱) ملاقات، یو ځای کېدنه؛ ۲) نص. مرکېدنه، خښېدنه.

**وصف** (wasf) نر.م. ستاینه، ښه والی، صفت.

**وصل** (wasál) نر.م. و.گ. وصال.

**وصلت** (waslát) نر.م. و.گ. وصال.

**وصي** (wasí) نر.م. هغه څوک چې وصیت کوونکی د وصیت د ترسره کولو لپاره ټاکلی وي.

**وصیت** (wasyát) نر.م. ۱) نصیحت؛ ۲) د هغه مال او ... سپارښتنه چې یو څوک له خپلې مړینې یا سفر څخه پخوا چاته کړې وي.

**وصیتنامه** (wasyatnāmá) ښځ.م. پیمان، ژمنه.

**وضاحت** (wazāhát) نر.م. سپینه خبره کونه، تشریح کونه، تفسیر بیانونه.

**وضع** (wazʕá) ښځ.م. ۱) صورت، شکل، څېره؛ ۲) حالت، وضعیت.

**وضعیت** (wazʕiyát) نر.م. کیفیت، حالت.

**وضو** (wuzo) ښځ.م. اودس، طهارت.

**وطن** (watán) نر.م. د پیدا کېدو ځای، هېواد.

**وطنپال** (watanpál) نر.م. وطنپرست.

**وطن پرست** (watanparást) ص.نر.م. له وطن سره مینه کوونکی، د وطن خدمت کوونکی.

**وطندار** (watandár) نر.م. و.گ: وطنوال

**وطنداري** (watandárí) ښځ.م. له وطن سره پت پالنه، د وطن له ولس سره مینه پالنه.

**وطنوال** (watanwál) نر.م. د یوه هېواد اوسېدونکي.

**وطني** (watani) ص. نب. وطن ته منسوب.

**وطې** (wate) ښځ.م. ۱) غوونه، جماع؛ ۲) تر پښو لاندې کول.

**وظیفه** (wazifá) ښځ.م. ۱) د خدای ذکر؛ ۲) هغه خوراکه چې طالبانو ته یې ورکوي؛ ۳) دنده.

وعده (wasdá) ښځ.م. عهد، قول، لوظ، اقرار.
وعده خلاف (wasdaxılāf) ص. نب. وعده نه پوره کوونکی، په وعده وفا نه کول.
وعظ (wasz) نر.م. نصیحت کول، پند کول.
وعید (wasíd) نر.م. د سزا ورکولو وعده، د ویرولو وعده، بده وعده.
وغژن (wagǯān) ص. چینجن.
وغه (wagā) نر. د ګېډې چینجی.
وغیره (wagayrá) ق. سربېره پر دې، او نور، او داسې نور.
وفا (wafā) ښځ.م. پت پالنه، د یارانی او دوستی وعده پوره کونه، ملګرتیا کونه.
وفات (wafāt) نر.م. مړینه، مړ کېدنه.
وفاق (wıfāq) نر.م ۱) موافقت، یووالی؛ ۲) دځینو ولایتونو مجموعه چې د ننه خپلواکي ولري.
وفاکېش (wafākéš) نر.م. وفادار.
وفایي (wafāyi) ښځ.م. وفامن، مینه ناک، محبتي.
وفد (wafd) نر.م. پلاوی، جرګه، هیئت، یو ټولی چې د غوښتنې لپاره چاته ورشي.
وفق (wafq) نر.م. سمون، مطابقت، تړون.
وفور (wafūr) ج. نر.م. زیاتوالی، کثرت، ډېروالی.
وقار (wıqār) نر.م. عزت، شرف، قدر، شان.
وقایع (waqāyíʕ) ښځ.ج. پېښې، واقعې، حادثې.
وقایوي (waqāyawí) ص.نب. حمایتي، محافظتي.
وقایه (waqāyá) ښځ.م. د کتاب پښتي، ساتنه، حمایت، محافظت، پوښ.
وقت (waqt) نر.م. وخت.
وقر (waqár) نر.م. ۱) عظمت، بزرګي؛ ۲) عزت، قدر؛ ۳) رتبه، منصب، عقل.
وقفه (waqfá) ښځ. م. ځنډ، مهلت، لږ ساعت دمه کونه.

وقوع (waqūʕ) ښځ.م. واقع کېدنه، ساعت تېرېدنه.
وقوف (waqūf) نر.م. پېژندنه، شعور، علم، پوهه؛ ۲) پر عرفات د حاجیانو تم کېدل.
وقیع (waqíʕ) ص. عزتمند، معزز، وقعت لرونکی.
وک (wak) نر.م. خوښه، طاقت، واک، اختیار.
وکاږل (wakāẓál) مص. مت. وباسل، ایستل. وکښل، ویستل.
وکالت (wakālát) نر.م. ۱) د وکیل دنده، د وکیل کار؛ ۲) د شورا غړیتوب.
وکالتاً (wakālatán) اد. د وکیل په وسیله.
وکر (wakár) نر.م. اکر، بڼه، څېره، رنګ، وضع.
وکښل (wakṣ̌ál) مص. مت. خارجول، وباسل، وښکل، ویستل، ایستل.
وکه (waka) ښځ.م. لوی ارمان، زیاته اشتها.
وکیل (wakíl) نر.م. ۱) اختیارمن، نایب، واکمن، مختار؛ ۲) په عدالت کې وکالت کوونکی.
وکیل التجار (wakilutıjār) نر.م. په خارج کې د سوداګرو استازی، وکیل، نماینده.
وګ (wag) ښځ.م. د مصنوعي وېښتو ټوپۍ.
وګړ آرپوهه (wagaṛarpoha) ښځ.م. وګړنې یا عامیانه ایتمولوجي، ریښه پېژندنه.
وګړپال (wagaṛpal) نر.م. وګړوال، بشرپال، بشر دوست.
وګړپوهنه (wagaṛpohana) ښځ.م. انسان پوهنه، بشر پېژندنه.
وګړپوهنیز (wagaṛpohaniz) نر.م. د وګړپوهنې اړوند، انتروپولوژیکي.
وګړپوهه (wagaṛpoha) ښځ.م. وګړپوهنه، فولکلور.
وګړپوهیز (wagaṛpohiz) نر.م. فولکلوري، فولکلوریک.

**وګړی** (wagə́ṛay) نر.م. سړی، کس، انسان، غړی.

**وګړيز** (wagaṛíz) نر.م. وګړنی، شخصي، ځانګړی.

**وګړيزنومځری** (wagaṛiznumʒ́aray) نر.م. وګړنومځری، شخصي ضمير.

**وګوره** (wagóra) امر، ووينه، وکسه.

**ول** (wal) نر.م ۱) پېچ و تاب، تاو؛ ۲) اندازه، هوښ؛ ۳) خبره، سوګند، قسم؛ ٤) حکمت، هنر؛ ٥) ارزان، سپک؛ ٦) ګرداب؛ ٧) ګواهي؛ ٨) تنبه، دروازه، دړه؛ ٩) ګرمه هوا، نم؛ ١٠) مص. مت. لکه ښورول.

**ولا** (walā́) ښځ.م. ۱) محبت، مينه؛ ۲) د کلي محل، بنګاه.

**ولادت** (wiladát) نر.م. پيدايښت، زېږېدنه.

**ولاړ** (walā́ṛ) ص.نر.م. ۱) پاځېدلی، درېدلی، جګ شوی؛ ۲) ف. نر.م. د تګ د فعل ماضي لکه: احمد ولاړ.

**ولاړتوب** (walāṛtób) نر.م. ولاړېدنه، درېدنه.

**ولاړول** (walāṛawə́l) مص. مت. پورته کول، جګول، ودرول، پاځول.

**ولاړېدل** (walāṛedə́l) مص. ل. پاځېدل، پورته کېدل، جګېدل.

**ولان** (walā́n) نر.م. بلد، عادي، آموخته.

**ولاند** (walā́nd) ص. نر.م. ج. ۱) بلد، اشنا عادی؛ ۲) نر.م. مړی مينځونکی، مرده شوی.

**ولانګه** (walanga) ښځ.م ۱) د مړي مينځلو تخته؛ ۲) النګر، عرشه.

**ولايت** (wilāyát) نر.م. ۱) د والي مرتبه، بزرګي؛ ۲) د صوبې د والي دفتر.

**ولايتي** (wilāyatí) نر.م. ۱) ولايت ته منسوب؛ ۲) د ولايت اوسېدونکی.

**ولټ** (wūlṭ) نر.م. د برقي فشار د اندازې واحد.

**ولجه** (waljá) ښځ.م. لوټ، تالان، د غنيمت مال.

**ولچک** (wulčák) نر.م. زولنې، هتکړۍ.

**ولڅه** (wulcá) ښځ.م. د مېلمستيا وار.

**ولخه** (wulxá) ښځ.م. صحرا، بيابان، ښېديا.

**ولد** (walád) نر.م. زوی، زامنګی.

**ولږه** (wlaẓá) ښځ.م. لوږه، د وږي کېدو حالت.

**ولس** (wulás) نر.م. اولس، خلک، وګړي، عوام.

**ولسپال** (wuləspā́l) نر.م. ولس روزونکی، ولس پالونکی.

**ولس دښمن** (wulasdoṣman) نر.م. د ولس دښمن، د ولس مخالف، ولس بد.

**ولس دښمني** (wulasdoṣmani) ښځ.م. د ولس دښمني، ملي دښمني، د قوم دښمني.

**ولسمل** (wuləsmal) نر.م. ولسپال، ولسيار، وګړپال، قوم دوست.

**ولسنښې** (wulasnaṣe) ښځ.ج. ملي پېژندنښې، ملي ځانګړنې، ملي مميزات.

**ولسواک** (waləswak) نر.م.ج. وګړواک.

**ولسواکي** (wuləswaki) ښځ.م.ج. وګړواکي، ولس مشري.

**ولسوال** (wulaswā́l) نر.م. حاکم، د ولسوالۍ حاکم.

**ولسواله** (wulaswā́la) ښځ.م. د ولس حکومت.

**ولسوالي** (wulaswā́li) نر.م. په افغانستان کې يو انتظامي واحد، په دولتي چوکاټ کې لويه سيمه.

**ولسي** (wulási) ص. نر.م. ښځ. عوامي، وګړنی.

**ولسي جرګه** (wulasijarga) ښځ.م.ج. د ملي شورا جرګه، کانګرس، پارلمان، قومي اسمبلي.

**ولشل** (wlašə́l) مص. مت. و ګ. لوشل.

**ولشونی** (wlašū́nay) نر.م. خمرۍ، هغه لوښی چې شېدې په کې لوشل کېږي، خوری.

ولښه (wūlṣa) ښځ.م. کوچ، کډه، تګ، تلنه.
ولغه (wūlğá) ص. لغ لغړ وولغه، څړانۍ کوتره.
ولک (walák) نر.م. ملک، جاګیر والا.
ولکه (walká) ښځ.م. ۱) سپارنه؛ ۲) قبضه؛ ۳) دنډ؛ ٤) چکله؛ ٥) کوچنۍ سیمه.
ولکۍ (walkáy) ښځ.م. د ونې جرړه، ولۍ.
ولګر (walgár) نر.م. ۱) ول اچوونکی؛ ۲) هغه سړی چې نرخ ټاکي، نرخ ټاکونکی.
ولګو (walgáw) نر.م. رچ، کالي، دکور سامان.
ولګۍ (walgáy) ښځ.م. ولیې، ریښه، رګ.
ولل (wlə́l) مص. مت. پرېولل، وینځل، مینځل.
ولماستنی (wálmāstanay) نر.م. ملاوستنی، کمربند، دملاوستنې ناسمه بڼه.
ولموری (walmóray) نر.م. اورمولی، ورمولی، د کوچنیانو یو ډول ناروغي.
ولمه (walmá) ښځ.م. د پیزار یا پڼو دننه تلی، د تلي په منځ کې ځای.
ولن (wlə́n) نر.م. مینځنه، پرېولنه، پرېمنځنه.
ولنګ (wálang) نر.م. ۱) انار؛ ۲) برخه، ونډه.
ولور (walwár) نر.م. د زوم د کورنۍ له خوا دناوې کورنۍ ته د ټاکلو روپیو ورکونه.
ولول (walwál) ص.نر.م. الوول، ګوړګوټې ویښته.
ولول (walawál) نر.م. روښانول، رڼا کول، غوړول.
ولوله (walwalá) ښځ.م. جوش، جذبه، احساسات.
ولولیز (walwalíz) نر.م. پارند، پاروونکی، احساساتي، جذباتي.
ولونی (wlū́nay) ص.نر.م. ۱) پېړزوان، د پوزې پسول؛ ۲) غسل ورکوونکی، مرده شوی.
وله[1] (wlə́) نر.م. مینځنه، پرېولنه.
وله[2] (wə́la) ښځ.م. ۱) بېډ ونه؛ ۲) واله، ویاله؛ ۳) جرړه، ریښه؛ ٤) اد. ورله، ورسره؛ ٥) ف.

نر. ښځ.م. ویې وله، وار پرې وکړه.
ولی (wálay) (ج. ولي) د ټټر د شاتنۍ برخې یوازخ، تر اووو لاندې شاتنۍ خواته پلن هډوکی، چارې یې هم بولي.
ولي (walí) ص.نر.م ۱) نېک، بزرګ، د الله دوست ۲) اض. لکه وررولي، عزیزولي.
ولې (walé) نر.م. د استفهام کلیمه، د څه لپاره.
ولۍ (wláy) ښځ.م. ۱) ولی، د الو بخارا په څېر یوه تروه مېوه؛ ۲) ریښه، جرړه، بنسټ، وله.
ولي پاڼه (walipāṇá) ښځ.م. پرار پاڼه، یو ډول بوټی چې د ویالو پر غاړو شین کېږي.
ولیعهد (waliṣáhd) نر.م. د پاچا زوی چې د هغه له مړینې وروسته د تخت حقداروي.
ولېښه (wleṣ̌á) ښځ.م. ۱) یو ډول لرګینه آله چې دمېږو وړی پرې غونډاري کوي؛ ۲) وېښه.
وم (wūm) ف.نر.ښځ.م. ۱) کومکي فعل، د ماضي لپاره لکه تللی وم؛ ۲) نرۍ لښتی لرونکی بې پاڼو بوټی، افسانوي هوما بوټی.
ومارګه (wūmargá) نر.م. بغوتی، مردار دانه.
ومان (wumā́n) نر.م. ومه، یو بوټی چې د خامې څرمنې د پخولو لپاره ترې کار اخلي، بندکی.
وناره (wunā́ra) ښځ.م. یو ډول غرنی وابښه.
ونج (wánj) نر.م. عوض، سوداګري؛ ۲) نقص؛ ۳) تغییر.
ونجړی (wanjáṛay) نر.م. وروکی مېږ.
ونجوری (wanjoray) ښځ.م. بنجاری.
ونجول (wanjawál) مص.مت. بدلول، عوض ورکول.
ونجېدل (wanjedál) مص. ل. بدلېدل، عوض کېدل.
وند (wánd) نر.م. ۱) د رود په منځ کې بند؛ ۲) زړوکی، زړه چینه، زړه توته؛ ۳) برخه، حصه، ولکه.

ون‌د خور (wandxór) نر. ملته خور حیوان.

وندر (wandár) نر.م. ۱) رسی، غرونډی، د پړی هغه حلقه چې د مال په غاړه کې اچول کیږي؛ ۲) هغه دام چې کبان په کې نیول کیږي.

وندل (wandál) مص. مت. کنځل کول، زیاړه کول.

وندن (wandán) ص. نر. م ۱) بچی لرونکی څاروی؛ ۲) تول، په تول.

وندنی (wandánay) نر. م. وودنی، وندلی، د شنو وابښو یا بوټو نه جوړ شوی پړی او تانګ.

وند وند (wándwánd) ص. نر. م. برخه برخه.

ونډ (wánḍ) نر. م. ۱) د کرلې ځمکې یوه برخه؛ ۲) د سپاهیانو ټولی؛ ۳) حصه، برخه.

ونډوالا (wánḍwālá) نر. م. د ونډ څښتن.

ونډ ونډ (wánḍwánḍ) ص. پارچه پارچه، برخه برخه.

ونډه (wanḍá) ښځ. م. برخه، حصه.

ونډی (wanḍáy) ښځ. م. ۱) برخه؛ ۲) قصابي، د قربانۍ مال د شریکانو په خپل منځ وېشل.

ونډیمار (wánḍimár) نر. م. کوتاند، کوتونکی، حلالونکی، قصاب، ونډی والا.

ونډیماري (wánḍimārí) ښځ. م. کوتاندي، قصابي، ونډی.

ونډی ونډی (wanḍáywanḍáy) ص. ټوکړه ټوکړه، ټوټې ټوټې، برخه برخه.

ونژی (wánžay) نر. م. ونړی، پرنجی، انتبوسی، عطسه.

ونکه (wanaká) ښځ. م. رواش، لېښی.

ونکی (wankáy) ص. نر. م همزولی، د یو عمر.

ونګ (wáng) نر. م. صوت، اواز، غږ.

ونګره (wángra) ښځ. م. تالاب، تالاو، ډنډ.

ونګ ونګ (wángwáng) نر. م. صوت. د کوچني د ژړا آواز، ونګه ونګه.

ونګه (wánga) ښځ. م. صورت، شکل، بڼه.

ونګه ونګه (wángawánga) نر. م. د کوچني د ژړا آواز، ونګ ونګ.

ونګی (wangáy) ښځ. م. سپوږمی، وړوکې ونه.

ونه[1] (wána) ښځ. م. ۱) درخت، درخته؛ ۲) قد؛ ۳) د قسم کلیمه.

ونه[2] (wúna) ښځ. م. د جمعې علامه، لکه ګلونه.

وني (waní) نر. م. هغه لرګی چې په هغه د لاندې غوښه د وچولو لپاره ویروي.

ونیله (wanilá) ښځ. م. زېړ رنګه بوټی دی.

وڼا (waṇā́) ښځ. م. ښکار، صید.

وڼاځ (waṇā́ǰ) نر. م. ښکار ځای.

وڼځ (waṇác) نر. م. هغه بخشش او کومک چې کال په کال له ناوې سره کیږي.

وڼکه (waṇáka) ښځ. م. د لمڅي څڼه.

وڼل (waṇál) مص. اوره کول، میده کول.

وڼیا (waṇyā́) ښځ. م. وریان، د دالو یو ډول دی.

وڼیوځی (waṇyuǰáy) ص. د کاریز هغه اوبه چې په تالاو کې نه جمع کیږي.

وڼی (waṇáy) نر. م ۱) ښکاري؛ ۲) ورنی؛ ۳) مندانو، منداړو.

وو (wū) ف. ج. ۱) لکه مور ناست وو؛ ۲) باد، هوا، روماتیزم.

ووبدل (wūbdál) مص. مت. وودل، اوبدل.

وودل (wudál) مص. مت. ووبدل.

وودہ (wudá) ص. نب. ۱) چوف، دم، تر اغیز لاندې راوستل؛ ۲) ویده، اوده، خوبولې.

ووډل (wuḍál) مص. ۱) مرتب کول، ترتیب ورکول ۲) ویدل، اودل.

ووره (wūrá) ښځ. م ۱) نری وریځ؛ ۲) دسترګو ګل.

ووریا (wūryā́) اد. ۱) هوزې، هلته؛ ۲) باران.

ووری (wūráy) ښځ.ج. د غاښونو ترمنځ غوښه، د نوکانو چاپیره غوښه، و گ. اوری.
وور (wōṛ) ص. نر.م. ورو کی، کوچنی، ورکوټی.
وورشمېر (woṛšmer) نر.م. کسري شمېر، مات شمېر، کسري عدد.
ووزوکی (wuzūkáy) نر.م. ووځوکی، هغه پېټی چې نارینه یې په شا ښځې یې په سر وړي.
ووړه (wūẓá) ښځ.م. ږولی، اوړه، ۲م هوړه، سپېره.
ووښ (wūṣ) نر.م. ۱) د څېلي واښ؛ ۲) اوښ.
ووکی (wukáy) ص. شاړ، خالي، تش.
وول (wūl) نر.م. د دروازې د بندولو اړم، تماچو.
ووله (wūlá) ښځ.م. متارکه، ډزبندي، تيره ایښودنه.
وولی (wūláy) ښځ.م. څېلې، جرړې، د ونې جرړې، د اوښ د کتې وراندینی کوږ لرگی.
وونډه (wūnḍa) ښځ.م. د یوه کلي اوښان چې یو اوښبه یې بیايي.
وووونه (wūwána) ښځ.م. د تورې او نورو فلزاتو اوبه.
وویه (wūya) ښځ.م. هگی، اگی.
ووی (wūwáy) نر.م. خبره، قول، وعده، ژمنه.
ووها (wūwhā́) اد. د حیواناتو د راگرځولو غږ.
وها (wahā́) نر.م. یو گردی بې پانو بوټی دی.
وهاب (wahā́b) ص. نر.م. ډېر بخښونکی، د الله تعالی یو صفتي نوم.
وهار (wahā́r) نر.م. پونه، زېم، څڅا.
وهارېدل (wahāredál) مص. ل. څڅېدل.
وهل (wahál) مص.مت ۱) ټکول، لگول؛ ۲) فرض کېدل؛ ۳) ماتې ورکول؛ ٤) خوړلی کېدل.
وهلندی (wahlandáy) نر.م. تاو راتاو، کوږووږ.
وهله (wahlá) ښځ.م. حمله، یرغل.
وهلی (wahálay) ص. ټکولی، لگولی.
وهم (wáhm) نر.م. شک، گومان، خیال.

وهندی (wahánday) ص. نر.م. ۱) مقبول، پېژره پورې؛ ۲) وهونکی.
وه وه (wáhwáh) اد. د تحسین کلیمه، داد گیرنه.
وهیر (wahír) نر.م. ویر، ژړا، واوېلا.
وهیرغاړی (wahírga̅ṛay) ص. ویرکوونکی.
وی (wáy) اد. اوه، دافسوس کلیمه، د درد کلیمه.
ویار (wyā́r) نر.م. ۱) عیب؛ ۲) حسد؛ ۳) غیبت.
ویارجن (wyārján) نر.م. ویارن، عیبجن، نیمگړی.
ویارن (wyārán) نر.م. و گ: ویارجن.
ویاړ (wyā́ṛ) نر.م. ۱) غرور، فخر؛ ۲) جونگړه.
ویاړجن (wyāṛján) ص.نر.م. فخرکوونکی، مغرور.
ویاړل (wyāṛál) مص. ل. غرور کول، فخرکول.
ویاړلی (wyāṛálay) نر.م. د ویاړ خاوند، ویاړن، له ویاړه ډک، مفتخر.
ویاړن (wyāṛán) نر.م. فخراو ویاړ کرونکی.
ویاړن غړی (wyāṛángāṛay) نر.م. ویاړلی غړی، افتخاري غړی، افتخاري عضو.
ویاړنه (wyāṛana) ښځ.م. د ویاړ شعر، فخریه، نازېده.
ویاړوبرم (wyaṛūbrám) نر.م. ویاړ و پرتم، شان و شوکت.
ویاړوپرتم (wyāṛopartám) نر.م. ویاړ و برم، ښاخ و پرتم.
ویاړوړ (wyā́ṛwáṛ) نر.م. د ویاړ وړ، د فخر وړ، ښاخ وړ.
ویاړه (wyaṛá) ښځ.م. ۱) فخر، ویاړنه، غرور؛ ۲) دایره، حلقه.
ویاسته (wyāstá) ښځ.م. بیاسته، یاسته، رسۍ.
ویال (wyā́l) ص. نر.م. ۱) خوشاله، خوش مزاجه؛ ۲) رون، تازه.

**ویالتوب** (wyāltób) نر.م. تازه ګي، شګفتګي، د ویال کېدو حالت، ویالتیا.

**ویاله** (wyālá) ښځ.م. ۱) تر تازه؛ ۲) بیاله، ویله، واله، د اوبو د بهېدو لوی لښتی.

**وياند** (wayánd) ص. نر.م. نطاق، ویونکی.

**ویاندي** (wayándí) ښځ.م. نطاقي، وينا والي، ويناكونه.

**ويت** (wít) ص. نر.م. ۱) ارت، پلن، پرانيستی؛ ۲) كړتو، بې حيا.

**ويت خولی** (wítxulay) نر.م. ۱) ستر خولی، لوی خولی؛ ۲) چټیات ویونکی.

**ويت سترګی** (witstárgay) ص. نر.م. بې حيا، بې شرم، وازسترګی.

**ويتكی** (witákay) ص. نر.م. ۱) بې حيا، شوخ؛ ۲) كړتو، د برې خبرې كوونكی.

**ويتېدل** (witedál) مص. ل. ارتېدل، پراخېدل، پلنېدل.

**ويجاړ** (wijā́ṛ) ص. نر.م. ج. وران، كنډر، ګډوډ.

**ويجاړتوب** (wijāṛtób) نر.م. ويجاړوالی، خرابي، ويجاړتيا، وراني، ګډوډي.

**ويجاړول** (wijāṛawál) مص. مت. ورانول، بربادول، خرابول.

**ويجاړېدل** (wijāṛedál) مص. ل. ورانېدل، بربادېدل، خرابېدل.

**وېخ** (wéx) نر.م. بېخ، جرړه، لاندې تل، رېښه.

**ويده** (widá) ص. نر.م. ج. بيده، اوده، خوبولي.

**ويدېدل** (widedál) مص. ل. اوده كېدل، ثملاستل.

**وير** (wír) نر.م. ژړا، فرياد، ژړا انګولا، ماتم.

**ويراوښكې** (wiróṣke) ښځ.م.ج. د وير اوښكې، د غم اوښكې، د ماتم اوښكې.

**ويرجن** (wirján) ص. نر.م. ج. وير كوونكی.

**ويرژړلی** (wiržáṛəlay) نر.م. ماتم كوونكی، نوحه ګر، وير لړلی، ويرګډی، وير غاړی.

**ويرژلی** (wiržálay) نر.م. ۱) ويرجن؛ ۲) غمجن، په غم اوښتی.

**ويرغاړی** (wirǧā́ṛay) نر.م. و.ګ. ويرژړلی.

**ويرګډی** (wirgáḍay) ص. نر.م. په غم ككړ، په غم اخته، غم شريک.

**ويرګول** (wirgwál) نر.م. چپه واو، كامه (،).

**ويرلړلی** (wirlaṛə́lay) نر.م. و.ګ. ويرګډی.

**ويرمن** (wirmán) ص. نر.م. غمځپلی، ماتم وهلی، غمجن.

**وېرندوكی** (werandū́kay) ص. نر.م. دارن.

**ويروس** (wirū́s) نر.م. د ناروغيو د پيدا كېدو ډېر كوچنی ميكروب.

**ويرنه** (wirána) ښځ.م. ويرليک، مرثيه، د غم اظهار.

**وېرول** (werawál) مص. مت. دارول، په زړه كې اندېښنه پيدا كول، بوږنول.

**وېره** (wéra) ښځ.م. ترس، بيم، دار.

**وېره اچونه** (weraačawána) ښځ.م. دارونه، دارونګ، دار اچونه.

**وېرېدل** (weredál) مص. ل. دارېدل، په زړه كې اندېښنه پيدا كېدل، خطر حسول، بوږنېدل.

**ويړ** (wiṛ) ص. نر.م. ۱) خپور؛ ۲) پراخ، ارت؛ ۳) د پټي شاوخوا د بنجخو او بناخونو دېوال.

**وېړول** (weṛawál) مص. مت. خپرول، غوړول، پراخول.

**وېړه** (wéṛa) ښځ.م. هغه غني او ښاخونه چې د پټي د فصل د ساتنې لپاره ترې كار اخلي.

**وېړېدل** (wiṛedál) مص. ل. خپرېدل، هوارېدل، غوړېدل.

**وېزار** (wezā́r) ص. نر.م. و.ګ. بېزار.

وېزه (wezá) ښځ.م. د یوه دولت له خوا بل هېواد ته د ورتلو اجازتپاڼه.
وېږد (wežd) نر.م. دا س دځپ وېښته، ورږ، یال.
وېږږی (wežžáy) نر.م. خراشکی، توکې، توکاڼې.
وېرل (wezál) مص. غځېدل، اوږدېدل.
وېره (wéza) ښځ.م. یو ډول واښه، یره.
ویږی (wezáy) مف.نر.م ۱) غځېدلی، اوږد شوی؛ ۲) د ملنګانو کجکول.
وېسا (wesá) ښځ.م. باور، اعتبار، اعتماد، ډاډ.
ویساک (wisák) نر.م. د هندوانو جشن، د هندي کال لومړی میاشت.
ویستل (wistál) مص. مت. وګ. ایستل.
وېسڼ (wesáṇ) نر.م. بې سڼ، د چنو اوره.
ویش[1] (wiš) اد. آه، اوه، د افسوس، حسرت، د غم او خپګان، د خوږ او درد د اظهار اواز.
وېش[2] (weš) نر.م. ۱) سرحد، برید؛ ۲) تقسیم، وېشنه، برخه برخه؛ ۳) د مار، لړم زهر، وښ.
وېشاک (wešák) نر.م. وېشنه، تقسیم، جلاوالی، تجزیه.
وېشاکګر (wešakgár) نر.م. وېشاکوال، وېشاکپال، تجزیه غوښتونکی، بېلتون غوښتونکی.
وېشاکګرانه (wešakgaraná) ښځ.م. بېلتونپالانه، تجزیه طلبانه، تجزیه ګرانه.
ویشت (wišt) نر.م. ۱) نښه ویشتنه؛ ۲) لاحقه چې د شلو مانا ښندي او د شلو له عدد څخه تر نه ویشتو پورې راځي.
ویشتل (wištál) مص.مت. ګوزار ورکول، په ګولۍ یا غشي وژل، ښکار کول.
وېش شمېر (weššmér) نر.م. انقسامي عدد.
وېشګر (wešgár) ص. نر.م. وېشونکی، تقسیم کوونکی.
وېشل (wešál) مص.مت. تقسیمول، تقسیم کول.
وېشلې (wešalé) ښځ.م. په غوړیو کې له نسریو اوړو څخه پخه شوې ډوډۍ.
وېش وړ (weswáṛ) نر.م. د وېش وړ، د تقسیم قابل، وېشل کېدونکی.
وېش وړتیا (weswáṛtyá) ښځ.م. د وېش وړتیا، د وېش قابلیت.
وېشه (wéša) ښځ.م. د کوټې لوې تیر، دستک.
ویښ (wiṣ) ص. نر.م. بېدار، د ویده ضد.
ویښتوب (wiṣtób) نر.م. ج. ویښتیا، بېداري.
ویښته (wiṣtá) نر.م. نري تارونه چې د انسانانو او حیواناتو پر پوستکي راشنه کېږي، موی.
وېښته رګ (weṣtárag) نر.م. نری شریان، نری رګ، شعریه عروق.
ویښول (wiṣawál) مص. مت. بیدارول، له خوبه جګول، له خوبه پاڅول.
ویښېدل (wiṣedál) مص. ل. له خوبه پاڅېدل، بیدارېدل، لتېدل.
وېګڼ (wegáṇ) نر.م. وګ. واګون.
وېل[1] (wel) نر.م. ۱) یو ډول رخت دی؛ ۲) سخته خبره، بې ځایه خبره.
ویل[2] (wayál) مص. ل. خبره کول، ګڼېدل، ویل.
ویلاړ (wiláṛ) ص. نر.م. تصمیم، عزم، نیت، ټینګښدنه.
ویلاړن (wiláṛán) نر.م. هوډیالی، باارداه، باعزمه.
ویلډنګ (wildíng) نر.م. دوه فلزه د برق په وسیله سره یو ځای کول یا سره منښلول.
وېلنه (welána) نر.م. ارزاني، ورياتوب.
وېلنی (welánay) نر.م. ایلنی، یو خپله زرغونېدونکی بوټی چې د ویالو په غاړه شین کېږي، پودینه.

ويلوب (wilób) نر.م. له‌اور غورځي غره راوتلي ويلې شوي مواد، لاوا.
ويلوبگر (wilōbgār) نر.م. وسپنويلوونکی، وسپنويلگر.
ويلول (wilawál) مص. مت. ويلې ياذوب کول.
ويلون (waylōn) نر.م. د موسيقۍ يوه آله.
وېله (welá) ښځ.م. ۱) وياله؛ ۲) گټه، فايده.
ويلی (wyálay) نر.م. خبره شوې، وعده شوی، خبره ويل شوې.
ويلې (wíle) نر.م. مايع شوی، اوبه شوی.
وېلی (weláy) نر.م. ۲) امټ، روږه؛ ۲) دهېوکو يو ډول ناروغي.
ويلېدل (wiledál) مص. ل. مايع کېدل، ټينگ مواد د حرارت په واسطه اوبه کېدل.
وينا (wayná) ښځ.م. خطابه، تقرير، بيانيه.
ويناتوکي (waynātoki) ښځ.م. د وينا توکونه، د کلام اجزا، ژبني توکونه.
ويناغږي (waynāğaṛi) ښځ.م.ج. ويناييز غږي، گړهاري غږي.
ويناواښتی (waynāwāṣtáy) تکيه کلام، چې هر ځای ځانگړې مانه نه لري لکه په دې جمله کې: پربېږده مړه. مړه دلته کومه ځانگړې مانا نه لري.
ويناوال (waynāwál) نر.م. وينا کوونکی، بيان کوونکی، وياند، نطاق.
ويناوالي (waynāwālí) ښځ.م. وياندي، خبرلوڅي، نطاقي.
وينا ييز (waynāyíz) نر.م. د ويناړوند، گړهاري.
وينځکه (winǰáka) ښځ. د وينځې تصغير نوم، وينځه، خدمتگاره.
وينځل (winǰál) مص. مت. و گ. مينځل.

وينځه (winǰa) ښځ.م. ۱) خاپ، داغ، خال، ټکی؛ ۲) وينزه، مينځه، د غلامه ښځينه بڼه.
ويندوکی (wayandúkay) ص.نر.م. زياتې خبرې کوونکی.
ويندوی (wayandóy) نر.م. وياند، نطاق، ويناوال.
ويندی (windáy) نر.م. په وينې بهېدنگ اخته، په وينډی اخته، د پوزې وينه.
ويندي (windí) ښځ.م. وينې بهېدنگ، وينه تلنه، خونرېزي، نزف الدم.
وينزه (winzá) ښځ.م. مريي، غلامه، د غلام مونثه بڼه.
وينکښي (winkáṣi) ښځ.م. د وينې ايستو کار، د رگ وهلو کار.
وينکښی (winkáṣay) ص.نر.م. وينه ايستونکی، رگ وهونکی، حجام.
وينگ (wayáng) نر.م. وينه، خبرې کونه، ادا ينه، تلفظ کونه.
وينگ ډول (wayángḍawál) نر.م. ادا ډول، د تلفظ ډول، د ادا طرز.
وينوب (winób) نر.م. زوې، پلازما، سرامني، خوناب.
وينه[1] (winá) ښځ.م. ۱) خون؛ ۲) آئينه، هنداره.
وينه[2] (wayána) ښځ.م. ۱) وينا، تقرير؛ ۲) نر.م. د لرگي کويه، د لرگي يو ډول چينجي.
وېنه (wená) نر.م.ج. ويانه، يو ډول شينکی چې زياتره په ښوره ځمکه يا دېوال کې راپيدا کېږي.
وينه زوه (winazáwa) ښځ.م. ۱) د نينکۍ د ننه نو او وينه؛ ۲) مج. په سختۍ تولې شوې پيسې.
وينې بيه (winebayá) ښځ.م. وينې گرمانه، د مرگ بدل، خونبها، د قتل غچ.

**وینې پوه** (winépoh) نر.م. وینه پوهاند، وینه پېژندونکی، هیماتولوژست.

**وینې پوهه** (winepohá) ښځ.م. وینې پوهنه، هیماتولوژي.

**وینې تویښت** (winetoyáṣt) نر.م. وینې تویونه، سفاکي.

**وینې تویوونکی** (winetoyáwū́nkay) نر.م. خونړی، وینې څښونکی، سفاک.

**وینې څښاک** (winéċṣā́k) نر.م. وینې څښتنه، سفاکي.

**ویول** (wayawə́l) مص. مت، په خبرو راوستل، گړول.

**ویل** (wayə́l) مص. خبرې کول، گویا کېدل، گړېدل.

**ویونکی** (wayū́nkay) نر.م. خبرې کوونکی، گړېدونکی.

**ویه** (wíya) ښځ.م. هگی، هویه، ویبه، وویه.

**ویی** (wáyay) (ج. ویي، ویونه) تکی، کلیمه، لغت.

**ویي اوډون** (wayíoḍū́n) نر.م. د ویونو اوډون، د کلیمو ترتیب.

**ویي پانگه** (wayípangá) ښځ.م. لغوي پانگه، لغوي ذخیره.

**ویي پانگیز** (wayipāngíz) نر.م. د ویي پانگې اړوند.

**ویي پور** (wayípor) نر.م. ویيز پور، لغوي پور، لغوي عاریت.

**ویي پوهاند** (wayípohānd) نر.م. ویي پوه، لیکزیکولوژست.

**ویي پوهنه** (wayipohə́na) ښځ.م. لغت پوهنه، علم اللغة، لیکزیکولوژي.

**ویي خج** (wayixáj) نر.م. د ویي (کلیمې) خج.

**ویېدل** (wayedə́l) مص. ل. په خبرو راتلل، په یو مخ خبرې کول، چتې گړېدل.

**ویي رغاونه** (wayiraǧawə́na) ښځ.م. ویي جوړونه، نوي (خپل لاسي) ویي جوړونه، نیولوگیزم.

**وییز** (wayíz) نر.م. د ویي اړوند، لغوي.

**وییکنومځری** (wayíknumǯəray) نر.م. اداتي ضمیر چې له دوو ویيکو (اداتو) څخه رغېدلی وي لکه پکې، راکې، پرې.

**وییکی** (wayíkay) ادات، حرف.

**ویي لیکپوهاند** (wayilíkpohā́nd) نر.م. ویي لیکی کښباند.

**ویي لیکپوهنه** (wayilíkpohə́na) ښځ.م. د ویي لیکی (قاموس) پوهنه یا کښښنه، قاموس یا سیند لیکنه.

**ویي لیکی کښباند** (wayilikáykṣánd) نر.م. ویي لیکی کښونکی، فرهنگ لیکونکی، قاموس لیکونکی.

# هـ

هـ⁽¹⁾ (hé) ښځ. م. د پښتو الفبې څلوېښتم توری، ابجدي ارزښت یې (۵) دی.

هـ⁽²⁾ (hé) د هجري کال لنډون نښه.

ها (hā́) ښځ. م. ۱) هګۍ؛ ۲) د تأسف، افسوس کلیمه ۳) اد. د «هغه» لنډون–ها خوا؛ ۲) ق. بلې، هو.

هاپه (hā́pa) ښځ. م. اپه، هپه، حمله، یلغار، چپاو.

هاتف (hātíf) نر. م. غیبي آواز، فرشته.

هاتي (hāti) نر. م. پیل، فیل.

هاجي (hāji) نر. م. نقل کوونکی، هجو کوونکی.

هادي (hādi) ص. نب. هدایت کوونکی، لارښود.

هار (hār) نر. م. ۱) ازمایښت؛ ۲) د غاړې امیل؛ ۳) د ګلونو لړ؛ ٤) پولي واحد دی.

هارل (hārə́l) مص. مت. ۱) څپل کول، لجوجت کول، سرتنبګي، سرزوري؛ ۲) ازمایښت کول.

هارن (hārn) نر. م. و ګ. ارن.

هاړ (hāṛ) نر. م. اهاړ، ۱) د ګرمۍ موسم؛ ۲) لړی.

هاړه هوړه (hā́ṛahóṛa) ښځ. م. شور، ځوږ.

هاضم (hāzím) فا. نر. م. هضم کوونکی.

هاضمه (hāzimá) ښځ. م. معده، دهضمولو دستګاه.

هاغسې (hā́ğase) اد. هغه شان، هغسې.

هاغومره (hā́ğūmra) ق. په هماغه اندازه، د هغه هومره لنډون.

هاغه (hā́ğa) ض. هغه، اغه.

هاکي (hāki) ښځ. م. یوه لوبه ده.

هال (hāl) نر. م. ۱) تالار؛ ۲) هغه لوبه کوټه چې غونډې په کې کېږي.

هالته (hā́lta) اد. هغه ځای کې، هلته.

هالکینه (hālakína) نر. م. هلکواله، ماشومتوب.

هاله (hālá) اد. ۱) هله، هغه وخت، نو بیا؛ ۲) ښځ. م ګول، حلقه، شپول، د سپوږمۍ کنډول.

هامون (hāmū́n) نر. م. صحرا، بیابان، دښت.

هان (hān) نر. م. منګ، عمر.

**هان اوږد تيا** (hānuẓdtyā́) ښځ.م. هان اوږدوالی، د عمر اوږدوالی.

**هاند** (hānd) نر.م. درک، وس، کوښښ، زيار، هڅه، جدوجهد؛ ۲) پوله، حد، بريد.

**هاندوهڅه** (hándūhacá) ښځ.م. هڅه او هاند، کاروزيار، هپه دپه، منډې ترړې، کوښښ.

**هاندي** (hāndí) ښځ.م. زيارکښ، خواريکښ، زيارن، زيارمن، زيارايستونکی.

**هاوان** (hāwā́n) نر.م. يو ډول حربي توپ.

**هاها** (hā́hā) ښځ.م. هياهو، د خوښۍ آواز.

**هاهولې** (hahole) ښځ.م. کنج و مکېز، نازو ادا، نازو کرشمه.

**هاهولي** (hā́holí) ښځ.م. کرشمه يي، مکېزي، کرشمه ساز.

**هبا** (habā́) نر.م. ميراث، ترکه، ميرات.

**هبات** (habā́t) ج.نر.م. تحفې، ډالۍ، هديې.

**هبته** (habatá) ص. ابته، خراب، عبث، فضول.

**هبته والی** (habata ílay) نر.م. خرابېدنه، عبث کېدنه، حبطه کېدنه، ابته کېدنه.

**هب دپ** (hábdap) نر.م. تېرونه، خوړنه.

**هبڼ** (habā́ṇ) ص.نر.م. داخل، ننوتی.

**هبه** (hába) ښځ.م. خير ب، صدقه، عطا کونه.

**هپ دپ** (hápdap) ق. ناڅاپي مرگ، د مفاجات مرگ، دماغي سکته.

**هپول** (hapawā́l) مص.مت. تېرول، خوړل، په يوه غړپ تېرول، په يو وار تېرول.

**هپه** (hápa) ښځ.م. ۱) د کوچنيانو په ژبه خواړه؛ ۲) چا پسې په جمع وتنه، د چا په ضد پورته کېدنه، حمله، چپاو، چاسره په کومک تلنه؛ ۳) ډېره هڅه، لاس و پښې وهل.

**هپه دپه** (hápadapa) ښځ.م. و.گ: هاندوهڅه.

**هتک** (hátak) نر.م. سپکاوی، بې عزتي، د چا توهين کونه، رسوايي، بې حرمتي.

**هټوڅی** (haṭójay) نر.م. بازار، مارکېټ.

**هتوړی** (hatoṛáy) ښځ.م. هتکړی، ولچک.

**هته** (háta) ښځ.م. څنگل، لېچه.

**هټ** (háṭ) نر.م ۱) هټۍ، دوکان؛ ۲) ضد، اړی کونه؛ ۳) بې کاره؛ ٤) هڅه، خواري؛ ٥) معطل.

**هټال** (haṭā́l) ص. اټال، ايسار؛ ۲) يو ډول زهر.

**هټکی** (háṭkay) نر.م. اېټکی، سلگی، اکک.

**هټۍ** (haṭáy) ج.ښځ.م. دوکان، اټۍ.

**هجاء** (hıjā́) ښځ.م. څپه، سېلاب، هجاء د مورفيم يو جز دی.

**هجر** (híjr) نر.م. بېلتون، جلاوالی، بېلوالی، هجران.

**هجران** (hıjrā́n) نر.م. و.گ. هجر.

**هجرت** (hıjrát) نر.م. وطن پرېښودنه، له يو ځای نه بل ځای ته تلنه.

**هجري** (hıjrí) ص.نب. ۱) د هجرت اړوند لکه هجري سنه؛ ۲) ناراست، سست، تنبل.

**هجړا** (hıjṛā́) نر.م. ايجړا، ښځونک.

**هجړي** (hajṛí) نر.م. هجړا.

**هجوه** (hajwa) ښځ.م. ۱) غندنه، رټنه، بد بيانونه؛ ۲) د شاعرۍ په اصطلاح د چا سپکاوی کونه، د يو چا غندنه.

**هجوم** (hujū́m) نر.م. گډه گونه، يرغل، حمله.

**هجه** (hája) ښځ.م. هڅه، په تکو وينه، په زور او زېر وينه.

**هځه** (háǰa) ښځ.م. و.گ. هجه.

**هڅوب** (hacób) نر.م. هغه څه چې ولسونه سره توپير کوي، کولتور، ژواک، فرهنگ، ثقافت، تهذيب.

**هڅول** (hacawā́l) مص.مت. لېبل، لمسول، تشويقول.

**هڅون وپاڅون** (hácunupā́cūn) نر.م. تلاش وقیام، جهش وقیام.

**هڅون و خوځون** (hácunuxwā́ǰūn) نر.م. تلاش وجهش.

**هڅونه** (hacawána) ښځ.م. لیږونه، لمسونه، تشویقونه.

**هڅه** (háca) ښځ.م. ۱) لټون، شوق، هوس، تلوسه؛ ۲) حمله، بلوسه؛ ۳) دوزې شړنه؛ ٤) کوښښ، زیار.

**هڅېدل** (hacedә́l) مص.ل. تشویقېدل.

**هځه** (hā́ǰa) ص. ښځ.م. (ج. هځې) په تورو، په تکو، په الفبا.

**هداد** (hadad) نر.م. سزا، مکافات، جزا.

**هدایت** (hıdāyát) نر.م. لارښودنه، رهنمایي.

**هدر** (hadár) ص. نر.م. ضایع کېدل، باطل کېدل، بربادېدل، بېهوده.

**هدف** (hadáf) نر.م. نښه، نښانه، نخښه، موخه.

**هد هد** (hudhúd) نر.م. ملاچرگک، گوډې چرگ، هغه الوتونکی چې په سر تاج لري.

**هدیره** (hadirá) ښځ.م. قبرستان، مقبره، ادیره.

**هدیه** (hadyá) ښځ.م. ۱) ډالۍ، نذرانه، سوغات، تحفه؛ ۲) قیمت، بیه.

**هډ** (haḍ) نر.م. ۱) هډوکی؛ ۲) اصالت و شرافت.

**هډبند** (haḍbánd) نر.م. هډوکي تړونکی، پلستر.

**هډپوهاند** (háḍpohánd) نر.م. هډ پوه، د هډوکو ماهر، هډوکي پېژندونکی، استولوژست.

**هډپوهنه** (háḍpōhána) ښځ.م. هډ پوهه، د هډوکو پوهنه، استولوژي.

**هډپوهنیز** (háḍpohániz) نر.م. هډپوهیز، د هډ پېژندنې اړوند، استولوژیک.

**هډتړ** (haḍtár) نر.م. د هډوکي د تړلو لپاره لازمه پټۍ.

**هډخور** (háḍxor) نر.م. د هډوکو خوړونکی.

**هډدرملی** (háḍdarmalay) نر.م. د هډوکو ډاکتر، هډسمی، شکسته بند.

**هډدرملي** (háḍdarmali) ښځ.م. د هډونو درملنه، هډسمون، شکسته بند.

**هډدرملیز** (háḍdarmalíz) نر.م. د هډ درملنې اړوند.

**هډسمی** (háḍsamay) نر.م. هډدرملی، هډوکي سمونکی، شکسته بند.

**هډماتوالی** (háḍmatwalay) نر.م. د هډ یا هډوکو ماتېدنه.

**هډماتی** (háḍmā́tay) نر.م. ۱) دښمني، تربگني؛ ۲) هغه یخني چې اثر یې تر هډوکي پورې وي.

**هډماتي** (háḍmā́ti) ښځ.م. ۱) دښمني؛ ۲) چې هډوکی یې مات وي؛ ۳) د هډماتولو پور.

**هډو** (háḍo) ق. بالکل، چرې، قطعاً، هېڅکله.

**هډواله** (háḍwā́la) ښځ.م. تنومندي، تنورتوب.

**هډوپلې** (haḍoplé) ښځ.م. هډوکي او پلې، پلې او هډونه.

**هډور** (haḍawár) ص. نر.م. ج. طاقتور، غښتلی، مضبوط، غټ او مضبوط هډونه لرونکی.

**هډوکی** (haḍū́kay) نر.م. د حیواني جسم هغه سخته برخه چې وجود پرې استوار وي.

**هډه** (haḍá) ښځ.م. تمځای، ایستگاه، اډه، د موټرو د درېدلو ځای، بس تمځی، د شالگولو ځای.

**هډي** (háḍi) نر.ج. ۱) د یوې لوبې نوم؛ ۲) د مرې یوه ناروغي، بغوتې، مغوتې.

**هډیز** (haḍíz) نر.م. هډن، هډین، هډوالا، د هډ یا هډوکو اړوند.

**هډین** (haḍín) نر.م. وگ: هډیز.

**هذيان** (hazyán) نـر.م. گـډې وډې خبرې، اوتې بوتې، چټيات وينه.

**هر** (hár) ص. نر.م. ١) ټول، تمام، يو يو؛ ٢)شور او غوغا.

**هراړخيز** (háraṛxiz) نر.م. هر پلوى، هر خواييز، جامع، څواړخيز.

**هراړخيزوالى** (háraṛxizwálay) نـر.م. هـر خواييزوالى، جامعيت، څواړخيزوالى.

**هراس** (hırás) نر.م. ويره، ترس، خوف،ډار.

**هران** (harán) ص. نر.م. ويرندوكى، ډارن.

**هراند** (hıránd)ص. نر.م. پريشان، سرگردان.

**هراندوالي** (harāndwálí) نر.م. بـزدلي، بې زړه توب، ډارن توب.

**هراندول** (harāndawál) مـص. مت. ويـرول، بې زړه كول، ډارول.

**هراندوكى** (harāndúkay) نر.م.ويرندوكى.

**هرانديدل** (harāndedál) مص. ل. تريدل، ويريدل، ډاريدل.

**هراول** (hırāwál) نر.م. دپوځ ړومبى جنگيدونكې ډله.

**هرت** (hárt) ص. ارت، واز، هارت.

**هرج و مرج** (harájumaráj) نـر.م. شـور و شر، درز و غوبل، گډوډي.

**هرجانه** (harjāná) نر.م. تاوان.

**هرچا** (harčá) ص. هر يو، ټولو.

**هرچرته** (harčárta) ق. هر چيرته، هرځاى.

**هرڅو** (harcó) ق. هرڅي، څنگه چې، هرڅل.

**هرڅومره** (harcómra) ق. هر څونه، هر اندازه.

**هرڅه** (harcá) ص. ټول، تمام، كل، واړه، هرڅيز.

**هرڅه برخه** (harcábarxá) ق. د لـور او خور لپاره برخه، حصه.

**هرځايي** (harǰayí) ص.نر.م. لندغر، لولنگر، آواره گرد، كوڅه ډب.

**هردري** (hardarí) ص.نر.م. اواره، هرځايي.

**هردم خيالى** (hardamxyálay) نر.م. هردم خياله، څپڅپاند، هوسى، هوبي.

**هردم خيالي** (hardamxyālí) ښځ.م. څپڅپاندي، هوسيتوب.

**هررنگه** (harránga) ق. هرڅنگه، په هر رنگ چې وي، په هره طريقه، په هره لاره.

**هرزه** (harzá) ص. نب. ١)چې چټي غږيږي، لوفر، بيهوده، بيكاره؛ ٢)هرزه گياه، بې كاره وابښه.

**هركاره** (harkārá) ښځ.م. كرچى، روغنداغ؛ ١)يو ډول كټوه چې په هغه كې اش يا غونه پخوي؛ ٢)ص. نب. هغه څوك چې په هر كار پوه وي.

**هركلن** (harkalán) نر.م. هركلين، هركال، همېشه.

**هركله** (harkála) نر.م. هروخت، همېشه، تل.

**هركله راشي** (harkálarāšé) ښـځ.م. ښـه راغلاست، هروخت راشئ، خداى مو راوله.

**هركلى** (harkaláy) نـر.م. ښه راغلاسـت، سترې مشي، په خير راغلى.

**هركلي خونه** (harkalixūná) ښځ.م. انتظارخونه، د منلو خونه، د پذيرش اتاق.

**هركلين** (harkạlín) نر.م. همېشنى، همېشه يي.

**هركى** (harkáy) نر.م. بې وجې او بې ځايه خندا.

**هرگجه** (hargajá) نر.م. ارگجه، گډ كاډيره، اړتم خرتم، ارجل.

**هرگز** (hargíz) ق. هېڅېرې هم نه، هېڅكله هم نه، بالكل نه، هېو.

**هرگوره** (hargóra) ق. ارومرو، خامخا، البته.

**هروني** (haroṇáy) ښځ.م. ١)د كوم شي د لاس ته راوړلو لپاره بيړه،سخته لېوالتيا؛ ٢)سخته تنده.

**هروار** (harwā́r) ق. هرغل، هره یاره.

**هرورځنی** (harwrajanáy) نر.م. هره ورځ، ورځنی، یومیه.

**هرومرو** (harūmarū́) ق. ارومرو، خامخا، ضرور.

**هری** (haráy) ص.نر.م. سرتنبه، ځبلي، هوډیالی.

**هرېدل** (haredál) مص. ل. ۱) خرهنګېدل؛ ۲) بې ځایه خندا.

**هرړ** (harír) ص. تریخ، ترش، ترېو.

**هرېړه** (hareṛá) ښځ.م. اربړه، د یوې دوایي نوم.

**هرېړی** (hareṛáy) ښځ.م. د کوندې لاستی.

**هړاند** (haṛánd) ص. نر.م. ۱) د بـر بوخـت، اختـه، ارم، بوخت، لګیا، پرېشان؛ ۲) لالهاند.

**هړپه** (haṛpá) ښځ.م. کولک، دسترګو کاسه.

**هړپی** (haṛpáy) ښځ.م. صندوقچه، ورو کې ډبې.

**هړتال** (haṛtā́l) نر.م. ۱) د احتجاج په توګه له کاره ګډ انکار، د بازار او هټیو بندونه؛ ۲) یو زهرجن معدني مرکب.

**هړیسه** (haṛisá) ص. نب. ډېر خورین، ایشېدلی.

**هزارداستان** (hazārdāstā́n) نـر.م. بلبله، شاعری کې استعمالېدونکی تکی.

**هزاره** (hazā́ra) نر.م. ج. سـورګل، غبرګ ګل، یو ډول صحرایي ګل دی.

**هزال** (hazā́l) ص.نر.م. ۱) چتیات ویونکی، بېهوده ویونکی؛ ۲) توکي.

**هزبر** (hazbár) نر.م. ۱) ببر، زمری؛ ۲) غټ، لوی، مضبوط.

**هزج** (hazáj) نر.م. ۱) په سر ویلو کېدونکی شیز؛ ۲) په عروضو کې یو بحر دی.

**هزل** (hazál) نر.م. توکې مسخرې، توکې ټکالې.

**هزیمت** (hazímat) نر.م. میدان پرېښودنه، ماتې، تېښتنه.

**هسپه** (haspá) ښځ.م. وزبه، مزبه، اسپه، یو ډول سرې ورې دانې دي چې په پوټکي راخېژي.

**هسپه بوټی** (haspabū́ṭay) نر.م. یو یوناني بوټی چې داسپې په علاج کې کارېږي.

**هست** (hást) نر.م. ۱) ژوند، زیست؛ ۲) صفت، د نیست ضد، شتون، شتهوالی.

**هستمند** (hastmánd) ص. دولتمند، شتمن.

**هستوګنځی** (hastoganjáy) نر.م. استوګنځی، د اوسېدو ځای، د اوستوګنې ځای.

**هستوګنه** (hastogána) ښځ.م. اوسېدنه، استوګنه، هستوګه.

**هستول** (hastawál) مص.مت. جوړول، ابادول.

**هستونه** (hastawána) ښځ.م. پنځونه، زېږونه، خلقونه.

**هسته** (hastá) ښځ.م. د حجرې مرکزي نقطه.

**هستي** (hastí) ښځ.م. ۱) وجود، کاینات؛ ۲) مال او متاع، شتمني؛ ۳) ذات.

**هستېدل** (hastedál) مص.ل. ۱) ایسارېدل، پیداکېدل؛ ۲) اوسېدل، ځای پر ځای کېدل.

**هستي ساز** (hastisā́z) نر.م. ژوند ساز، زنده ګي ساز.

**هسک**[1] (hísk) ص.نر.م. قرعه، پچه، خسنی.

**هسک**[2] (hásk) نر.م ۱) اوچت، لوړ؛ ۲) آسمان.

**هسکوالی** (haskwā́lay) نـر.م. اوچـتـوالی، لوړوالی، عظمت، هسکتیا، هسکتوب.

**هسکول** (haskawál) مص.مت ۱) لوړول، اوچتول؛ ۲) شاړېل، لړل، سرګردانول؛ ۳) خسنې اچتول.

**هسکه** (haská) ښځ.م. لوړه، اوچته.

**هسکېدل** (haskedál) مص. ل. لوړېدل، اوچتېدل، لوړېدل.

**هسکېرلی** (haskerálay) نر.م. و ګ. اسکېرلی.

**هسګ** (hásg) نر.م. د مرغۍ ځاله.

**هسې** (hásę) ق. ۱) بې فـايدې، وريا، هم هسې؛ ۲) الکه، غوندې، په شهر، داسې.

**هُش** (hūš) نر. م. اسم صوت، هوش، پام، فکر.

**هشتوالی** (haštwā́lay) نر. م. هستي، وجود.

**هشت ومشت** (haštumóšt) نر. م. شور ماشور، غوغا، الـه گوله، شور وغوغا، اخ و ډب.

**هشگوڼی** (hašgūṇay) ص. نـر. م. تـريخ، تـوند مزاجه، سخت طبيعته، تېز طبيعته.

**هشه** (háša) اد. د خرې د شړلو اواز، اشه.

**هښ** (haṣ̌) نر. م. اوبښ.

**هښمه** (híṣ̌ma) ښځ. م. ۱) د برېښنا سـره يو ځـای توره وربځ پيدا کېدنه؛ ۲) د باران شپه.

**هضم** (házam) نر. م. په معده او کـولـمو کې د خوړو ميده کېدل او جذبېدل.

**هضمول** (hazmawál) مص. مت. ۱) هضم کـول، خوړل؛ ۲) پردی مال غصب کول.

**هضمېدل** (hazmedál) مص. ل. ۱) هضم کېدل، د خوراک نه وينه جوړېدل؛ ۲) حرام مال خوړل.

**هغ** (hā́ğ) ص. لالهاند، سرگردان، سراسيمه.

**هغسې** (hā́ğase) ق. ۱) هسې؛ ۲) پـه هغـه شـان، هغـه رنگ.

**هغلته** (hağā́lta) ق. و گ. هلته.

**هغومره** (hağū́mra) ق. هومره، دهغه په اندازه.

**هغوی** (hağū́y) ض. ج. د هغه جمع.

**هغه** (hağá) ض. د غايب سړي يا شي لپاره ضمير.

**هغه دغه** (hā́ğadā́ğa) نـر. م. اگرمگر، اخـوا دې خوا، انې بانې، عذر.

**هک** (hak) ص. پرېشان، حيران.

**هک اريان** (hakaryā́n) ص. ډېر حيران.

**هک پک** (hákpak) ص. نر. م. ج. حيران، اريان، هک حيران، هک وپک، اريان دريان.

**هکتار** (hıktā́r) نر. م. هکتار، لس زره متره مربع.

**هگنی** (hagnáy) ښځ. ج. د هگيو اېښودلو لوښی، د هگيو خوندي کولو لوښې، تخمداني.

**هگی** (hagáy) ښځ. م. اگي، ويه، تخم، ويبه.

**هگی ډوله** (hagáydáwla) ښځ. م. هگۍ ته ورته، د هگۍ غوندې.

**هل** (hál) نر. م. بيوه، قولبه، يو ځل قولبه کول، مغيره حالت يې هله راځي.

چې د پير ذکـر يې هـل شو

په نوی فکر کې کوډهل شو (ارزاني)

**هلاک** (halā́k) ص. نر. م. مړشوی، قتل شوی.

**هلاکت** (halākát) نر. م. مړينه، تباهي، هلاکي.

**هلاکول** (halākawál) مص. مت. مړ کـول، تباه کول.

**هلاکېدل** (halākedál) مص. ل. مـړ کـېدل، تباه کېدل، قتلېدل،

**هلال** (hılā́l) نر. م. د لومړۍ شپې نه تر درېيمې شپې پورې د سپوږمۍ حالت.

**هلالي** (hılā́li) ص. هلال ته منسوب.

**هلاهل** (halāhál) ص. زهر قاتل، تېز زهر، وهلهل.

**هلته** (hálta) ق. هغه ځای کې، هلته کې.

**هلک** (halák) ص. نر. م. ۱) ځوان، کوچنی؛ ۲) نر ماشوم، بچی، زوی.

**هلکتوب** (halaktób) نـر. م. وړوکـتـوب، ماشومتوب.

**هلکوالی** (halákwā́lay) نـر. م. مـاشـومتوب، وړوکتوب، دهلکتوب وخت، هلکواله.

**هلکوټی** (halakóṭay) نر. م. وړوکی، کوچنی.

**هلم** (halm) نر. م. و گ. الم.

**هلواک** (halwā́k) نر. م. ص. ۱) تلوسه لرونکی، لالچي، بېړندی؛ ۲) حرص، لالچ.

**هله** (hála) ق. ۱) ژرشه، ژر کړه؛ ۲) اد. هېه، چپاو، یرغل، داړه، تاخت، تاراج، حمله.

**هله ځله** (hálaǰála) ښځ.م. کوښښ، زیار.

**هله کول** (halakawəl) مص.مت. یو مخیز یرغل، یو دم یرغل.

**هله ګوله** (hálagúla) نر.م. اله ګوله، ګډه ګونه، درز دروز، هله ګله.

**هلهله** (halhalá) ښځ.م. شوروشر، غوغا.

**هله هله** (haláhalá) اد. ژر کوه، ژرشه، شا به کړه.

**هلې ځلې** (hálečálc) ښځ.ج. منډې ترړې، زیار، کوښښ.

**هلیکوپتر** (hılıkoptár) نر.م. چورلکه، یو ډول څرخي الوتکه.

**هم** (ham ,hum) ق. ۱) بیا هم، څکه چې؛ ۲) علاوه، زیات له دېنه.

**هما** (humā́) ښځ.م. عنقا، یو ډول خیالي مرغه دی.

**هم ارزی** (hámarzay) نر.م. هم ارزښتی، هم ارز.

**هم ارزي** (hamarzí) ښځ.م. هم ارزښتي، هم ارزي.

**هم اری** (hamā́ray) نر.م. هم ریښه، همبنسټی ځغه چې ګډه آره (منشأ، اصل یا نسب) سره لري.

**هماندپوهی** (hamāndpóhay) نر.م. د یوې ایډیولوژی والا، د یوې اندپوهې والا.

**هماندی** (hamā́nday) نر.م. همسوچی، همالواکی، همليدی.

**هماندي** (hamāndí) ښځ.م. همسوچي، همالواکي، همفکري.

**همایون** (humayū́n) نر.م. نېکبخت، بختور.

**همایوني** (hamāyoní) ښځ.م. د هماهمتګی، د هما ملګری، د هما مرغۍ ملګری یا نر.

**همبریدی** (hámbriday) نر.م. همسرحدی، همغاړی، همه...

**همبزم** (hambázm) ص. د یو محفل د ناستې پاستې والا، دوست، ملګری.

**هم بستر** (hambıstár) ص. د کټ ملګری، محبت کوونکی، هم بستري، همخوابه.

**همبستري** (hambıstarí) ښځ.م. غوونه، همخوبي، کوروالی، جماع.

**همبنډاری** (hambánḍāray) نر.م. هم مجلسی، همبزمی.

**همبنډاري** (hambánḍarí) ښځ.م. هم مجلس، همبزمي.

**همبنډاري** (hambánḍā́rí) ښځ.م. شریک بنډار کول، ګډ مجلس کول.

**همبنسټی** (hambanṣátay) نر.م. همآری، همریښه، همبنیاد.

**همپاتمړی** (hampātmáṛay) نر.م. هم میراثی، میراث خور، وارث.

**هم پایه** (hampā́yá) ص. په عمر برابر، په مرتبه کې یو برابر.

**همپوړی** (hampóṛay) ښځ.م. د یوې پوړی، د یوې رتبې یا مقام.

**همپوړي** (hampoṛí) نر.م. هم مقامي، همرتبه ګي.

**همپېری** (hampéray) نر.م. همدوره، همعصر.

**همت** (hımát) نر.م. غیرت، مېړانه، اراده.

**همتا** (hamtá) ص. ساری، سیال، په څېر، برابر.

**همتناک** (hımatnák) ص. نر.م. محنتي، د همت خاوند، باهمته، زړور.

**هم توکی** (hamtókay) نر.م. همجنس.

**همجد** (hamjád) نر. له یوه نیکه، تربوران.

**همجوار** (hamjawā́r) ص. کلیوال، ګاونډی.

**همجوله** (hamjáwla) ښځ.م. هم څېره، سره ورته، یو رنګ.

**همجولیز** (hamjawlíz) نر.م. همجوله، هم شېره، متحد الشکله، مشابه.

**همجولیزوالی** (hamjawlízwálay) نـر.م. همڅېرتیا، ورته والی.

**همچمی** (hamčámay) نر.م. همکوڅه، گاونډی، همسایه.

**همځالی** (hamǯálay) نر.م. همکوری، همخونی، یو ځای اوسېدونکی.

**هم ځېلی** (hamǯélay) نـر.م. د گډ ځېل والا، د گډې ریبې والا، همنوع.

**هم څنگ** (hamcáng) ص. نـر.م. همزولی، سیال، ساری، شریک، ثاني؛ د ژوند ملگری.

**همڅېرتیا** (hamcértyā́) ښـځ.م. همـرنگـي، ورته والی، مشابهت.

**همڅېره** (hamcerá) ښځ.م. همجولی، همگونه، همبڼی، هم قیافه.

**همخونی** (hamxónay) نر.م. همکوټه، هم اتاق، د خونې ملگری.

**همخویه** (hamxoyá) ښځ.م. هملوښی، همخو.

**همدارنگه** (hamdāránga) ق. همداراز، همداسې، همدغسې.

**همدرد** (hamdárd) ص. په درد کې شریک، ملگری خیرخواه، خوږمن، دردمن.

**همدم** (hamdám) نر.م. ملگری، دوست.

**همذات** (hamzā́t) نر.م. په وینه کې شریک، یو قوم.

**همرکاب** (hamrikā́b) نر.م. د لارې مل، د رکاب ملگری، نوکر، د سورلی ملگری، هم سفر.

**همرنگ** (hamráng) نر.م. همرنگی، یو رنگ، یو راز، یو څېر.

**همرنگی** (hamrángay) نـر.م. چې په رنگ یو ډول وي، په رنگ سره ورته.

**همرنگي** (hamrangí) ښځ.م. یورنگي، یو ډولي.

**همزولانه** (hamzawlana) ښځ.م. همزنداني، هم زنځیری، د زندان ملگری.

**همزولتیا** (hamzūltyá) ښځ.م. د یو عمر والا.

**همزولف** (hamzū́lf) نر.م. سانډو، خښیني میږه، د میرمني د خور میږه.

**همزولی** (hamzólay) نر.م. په یو عمر، دبرابر عمر.

**همزه** (hamzá) یو عربي ستونیز تمغږ (انسدادي) اواز (ء) دی چې عجمي ژبې یې نه لري.

**همژبی** (hamžábay) نر.م. گډه ژبیزوالی، همزباني.

**همسا** (hamsā́) ښځ.م. امسا، لکړه، کونتۍ، عصا.

**همسایه** (hamsayá) نر. ښځ.م. ۱) فقیر، کرایه نشین؛ ۲) گاونډی.

**همسفر** (hamsafár) نر.م. د سفر ملگری.

**همسندری** (hamsandáray) نـر.م. همبول، هم اوازی، هماهنگ.

**هم سنگ** (hamsáng) نر.م. هم وزن، سیال.

**هم شکل** (hamšakál) ص. نر.م. په شکل سره برابر، یو څېره، په څېرې کې سره ورته.

**هم ښنک** (hamṣánk) نر.م. هم ښانک، انډیوال.

**هم طالع** (hamtalíʕ) ص. ښځ.ج. په یوه نصیب، په یو طالع.

**هم صنفي** (hamsinfí) نر. ښځ.م. ټولگي وال.

**هم عصر** (hamʕásər) نر.م. د یو دور، د یوې مودې، د یوې زمانې.

**همغاړی** (hamǧā́ṛay) نر.م. دوست، ملگری.

**همغږی** (hamǧáẓay) نر.م. هم اوازی، همنوا.

**هم هغسې** (hamhaǧə́se) ق. هم هاغسې، هماغه شان، هماغسې.

**همغلته** (hamaǧə́lta) هملته، همالته، هماغلته.

**هم هغه** (hamaǧá) ض. هماغه.

**همکار** (hamkár) نر.م. د شعبې یا د کار ملګری.
**همکاري** (hamkári) ښځ.م. مرسته کونه.
**هم کاسه** (ham kāsá) ښځ.م. هم کونډی، د کاسې انډوال، د لوښي انډیوال.
**همکوری** (ham kóray) نر.م. هم استوګنی، هم منزلی، همخانه.
**همکېتی** (hamkétay) نر.م. هم دینی، هم مذهبی، همکېش.
**همګروهی** (hamgróhay) نر.م. د یوې ګروهې ملګری، همسندی، همعقیده.
**همګروهي** (hamgrohí) ښځ.م. همسندي، همعقیده والی، همرایي.
**هم ګوند** (hamgwánd) نر.م. د یوه تنظیم، د یوه ګوند یا پارټۍ، د یوې کورنۍ.
**همانیز** (hammániz) نر.م. هم مانیز، مترادف، د یوې مانا والا.
**همانیزوالی** (hammanízwálay) نر.م. هم ماناوالی، مترادفوالی، هم ماناتوب.
**همانیزونه** (hammanizūná) ښځ.م. هم مانیز ویپونه، مترادف لغات.
**هم مسلک** (hammaslák) نر.م. هم کسب، یو مسلک والا، د یوې رشتې والا.
**هم منګی** (hammángay) نر.م. هم مهالی، هم عمری، همزولی.
**هممهال** (hammahā́l) نر.م. همزمان، پر یوه وخت، په عین وخت کې.
**هممهالی** (hammahā́lay) نر.م. همپېری، همعصر، همزمان.
**هممهالې ژبپوهنه** (hammahaležábpohána) ښځ.م. چې ژبه په یوه ټاکلې مهال پېر کې تر څېړنې لاندې نیسي.

**هم نژاد** (ham nžád) ص. نر.م. د یو نژاد، د یو توکم، د یو نسل.
**هم نفس** (ham nafas) نر.م. نیږدې دوست.
**همنوږی** (hamnožay) نر.م. همنوږیز، هم جنس، همځېلی، همنوع.
**همنوږي** (hamnoží) ښځ.م. همنوږیزوالی، هم جنسي، همځېلي.
**همنوږیز اړیکي** (hamnožízariki) ښځ.م. همجنسي اړیکې.
**همنوع** (hamnáwṣa) ص. نب. هم جنسه، د یو جنس.
**همنومی** (hamnúmay) ص. نر.م. هم نامی، د یو نوم والا، عزیز.
**همنومي** (hamnumí) ښځ.م. همنامي، یو نومي، سنامي، هم اسمي.
**هموار** (hamwár) نر.م. هوار، اوار، غوړېدلی.
**همواګی** (hamwā́gay) نر.م. همسپور، همیونی، همعنان، همرکاب.
**هموطن** (hamwatán) ص. نر.م. وطندار، وطنوال، د یوه وطن، د یو هېواد.
**هم ونی** (hamwánay) نر.م. همقدی، هم اندازه.
**همه ګیر** (hamagír) ص. نر.م. په ټولو حاوي، په ټولو برلاسی، د هرې خوا، چاپېره.
**هم هی** (hamháy) نر.م. د اوښ د شړلو اواز.
**هم هوډی** (hamhóday) نر.م. د ګډ هوډ والا، هموېلاړی، د ګډ تصمیم والا.
**همیانی** (hamyanáy) ښځ.م. بوخڅکی، د پیسو بټوه، بخسکی.
**همېش ګل** (hamešgwál) نر.م. همېشه ګل، همېشه بهار، یو ډول ګل دی.
**همېشنی کړ** (hamešánaykáṛ) نر.م. نابشپړ (غیر مطلق) فعل، استمراري فعل.

**همېشه** (hamešá) ق. ص. همېش. تل، هر وخت، هر کله، د تل لپاره.
**همېل** (hamél) نر.م. و گ. امېل.
**همیونی** (hamyū́nay) نر.م. همسفر.
**هنت** (hánt) نر.م. تور، تهمت.
**هنجه** (hánja) ښځ.م. هنج. هنگ، انجه، یو ډول تېز بویه یوناني دوا.
**هنجی** (hanjáy) نر.م. سیلېدل، سېلی وهل.
**هند** (hánd) نر.م. حد، اندازه.
**هنداره** (handārá) ښځ.م. آئینه، وینه، اېنداره.
**هندسه** (handasá) ښځ.م. شکل، عدد، د اشکالو او ابعادو د اندازه کولو علم.
**هندواروپایي** (hındōaropāyí) ښځ.م. د هغې ستري ژبنۍ کورنۍ نوم چې هند واریاني او نورې اروپایي ژبې پکې راځي، هندوارین، هندوجرمن.
**هندواریایي** (hındōaryāyí) هغه ژبنۍ څانگه چې په پخوانی اریانا پورې اړه لري.
**هندوانه** (hındwāṇá) ښځ.م. یوه اوبلنه مېوه ده.
**هندوانی** (hındwāṇáy) ښځ.م. ۱) هندوه؛ ۲) یوه زېړ سرې مرغۍ.
**هندوچیني** (hındōčiní) ښځ.م. د چین- تبتي ژبنۍ کورنۍ بدل نوم، چین تبتي.
**هندوه** (hındáwa) ښځ.م. د هندو ښځه، د هندو مذهب پیرو.
**هنده** (hındá) ښځ.م. ۱) په یوه ساه څښل؛ ۲) تکل، اراده.
**هنډهنډ** (hánḍhánḍ) نر.م. توکړې توکړې، توټې توټې، ستړی؛ هنډی هنډی.
**هنډه** (hínḍa) ښځ.م. ۱) برخلافي؛ ۲) الوېې او مستي؛ ۳) اراده او تصمیم.
**هنر** (hunár) نر.م. فن، کمال، جوهر، کسب.
**هنرپال** (hūnarpā́l) نر.م. هنرپالونکی، هنرمل.
**هنرپېشه** (hūnarpešá) نر.م. هنرمند، فنکار.
**هنرتون** (hūnárton) نر.م. د هنرونو مرکز. هنرستان.
**هنرزېږ** (hūnarzéẓ) ښځ.م. هنرزېږون، هنري زېږندویي، هنري تخلیق.
**هنرزېږی** (hūnarzéẓay) ښځ.م. هنرزېږند، د هنر زېږندوی، هنر آفرین.
**هنرمل** (hūnarmál) نر.م. هنردوست، هنرمین، هنرپال.
**هنرمند** (hūnarmánd) ص. نر.م. هنرپېشه.
**هنرمندانه** (hūnarmandāná) ښځ.م. ماهرانه، په هنرمندۍ سره.
**هنري** (hūnarí) ص. نب. هنر لرونکی، هنرمند.
**هنک** (hanák) نر.م. مسخره، پېچموزه، ټوکه.
**هنکی** (hınkáy) نر.م. د واده پر وخت د ناوې ژړا.
**هنگ** (háng) نر.م. ۱) اراده، زور؛ ۲) ځیرک، دانا؛ ۳) ملنډه، پېچموزه؛ ۴) د خره اواز.
**هنگا** (hıngā́) ښځ.م. ۱) د خر یا خرې اینگېدل؛ ۲) د کوچني پر له پسې ژړا.
**هنگاره** (hıngārá) نر.م. ۱) د سپیو او لېوانو انگولا؛ ۲) د ویر ژړا.
**هنگامه** (hangāmá) ښځ.م. شور و غوغا، گرېږ.
**هنگامه یي** (hangāmayí) ښځ.م. له شور و ځوره ډک، بولولیز، انگازور، انگازه یي.
**هنگامي** (hangā́mí) ښځ.م. بېړنی، اضطراري.
**هنگهار** (hangáhā́r) نر.م. زگېروی، فریاد.
**هنگی** (háŋgay) نر.م. و گ. هنگېدل.
**هنگېدل** (hangedál) مص.ل. د خره آواز، هنگی.
**هنړ** (háṇ) نر.م ۱) په زوره خندا؛ ۲) د اسپې هناره.
**هنا** (hıṇā́) ښځ.م. د خر او کچر هنگېدنه.

هڼ تڼ (hánṭaṇ) نر.م. روغ جوړ، روغ رمټ.

هڼه (háṇa) ښځ.م. انه، ضعیف، کمزوری، بې سیکه.

هڼهار (haṇhár) نر.م. په زوره خندا، د خر اواز

هڼېدل (haṇedál) مص.ل. ۱) آس یا خره آواز کول ششنیدل؛ ۲) په زوره خندل.

هو[1] (háw) اد. ۱) د غوا د شړلو اواز؛ ۲) هنګامه؛ ۲) یرغل؛ ۳) ژبه، لوظ؛ ٤) د تعجب کلیمه.

هو[2] (hó) ق. بلې.

هو[3] (hū) نر.م. یرغل، برید، ورچیغه کول.

هوا (hawá) ښځ.م. ۱) باد، ۲) کبر، غرور؛ ۳) بې رنګه اوبې بویه اوبې خونده ګاز دی چې زموږ چاپېریال یې احاطه کړی دی.

هواباز (hawābáz) نر.م. جهاز چلوونکی، پیلوټ، الوتونکی، چترباز.

هوا پوهنه (hawápohána) ښځ.م. هواپېژندنه، موسمیات، هواشناسي.

هواپوهنیز (hawápoháníz) نر.م. هواپوهیز، موسمیاتي.

هواخواه (hawāxwá) ص. نر.م. ۱) ملګری؛ ۲) پلوی.

هواخوري (hawāxorí) ښځ.م. چکروهنه، سیل کونه، ساتېري.

هوادار (hawādár) ص. نر.م. پراخ او اوچت ځای.

هوار (hawár) ص. نر.م. ج. ۱) ویره، برابر، اوار؛ ۲) سم؛ ۳) تېز چلېدل، تېز تګ.

هواروالی (hawārwālay) نر.م. هوارتوب، هوارتیا سمبدل، د هوارکېدو حالت.

هوارول (hawārawál) مص. مت. د کنډو کپر له منځه وړل، اوارول، سمول، ویرول.

هواروونکی (hawárawūnkay) نر.م. اواروونکی، پلنوونکی، حلوونکی، حل کونکی.

هواره (hawára) ښځ.م. ۱) سمه، میداني سیمه؛ ۲) روغه، جوړه.

هواری (hawáray) نر.م. اواری، اوارونه، پلنوالی، حل.

هواري وړ (hawāriwáṛ) نر.م. د هواري وړ، د حل وړ، د پلنوالي وړ.

هوارېدل (hawāredál) مص.ل. سمېدل، برابرېدل، یو شان کېدل، ویرېدل، ...رېدل.

هواړ (hawáṛ) نر.م. ۱) لوخړه، بخار، بړاس، مرداړ؛ ۲) ځپه ځپه.

هواسپېځنه (hawaspecana) ښځ.م. هواتاندتیا، د هوا تصفیه.

هواسپېځی (hawáspecáy) نر.م. هوا تاندوی، هوا سپېځ، ایرکنډېشنر.

هواکښ (hawákáṣ) نر.م. د هواوتنې کړکۍ، د هوا وتنې سوری.

هواګیر (hawárgír) نر.م. ۱) تېز تګ؛ ۲) اوپره، سرسري، اوچت.

هوامېچ (hawáméč) نر.م. هوا سنج.

هوامېچي (hawáme̕čí) ښځ.م. د هواکچ ومېچ، هوا مېچنه.

هوانورد (hawanáwárd) نر.م. هواباز، په هوا کې الوتونکی.

هواوېجه (hawáwéja) ښځ.م. هوایي قلمرو، اتموسفیر.

هوایي (hawāyí) ص. نب. چالاک، بې پروا، چې په هوا کې وي، سرسري، آسماني.

هوایي چلند (hawayičalánd) نر.م. هوایي ترېفیک.

هوایي ځواک (hawayíǰwák) نر.م. هوایي طاقت، هوایي نېرو.

هوايي ډزې (hawayíḍazé) ښځ. م. ج. هوايي ټکونه، هوايي فيرونه.
هوايي ډګر (hawāyiḍagár) نر. م. د الوتکو د کېناستو او پورته کېدو ميدان.
هوايي کرښه (hawayikárṣa) ښځ. م. هوايي ليکه، هوايي خط.
هوبله (hóbla) ښځ. م. ذريعه، وسيله، چاره.
هوبهو (hū́bahū́) نر. م. کټ مټ، بېخي سره ورته، هم هغه شان، بالکل هغسي، يو رنګ، ټکي په ټکي.
هوبي (hobí) ص. نب. مذبذب، غير مستقل مزاجه، متلون مزاجه.
هوټ (hoṭ) نر. م. پړی، پيکر، جسد.
هوټل (hoṭál) نر. م. ميلمستون، رستورانټ.
هوټي (hoṭí) نر. م. بادي اوبښ، هغه اوبښ چې ډېر چټک تګ کوي.
هودج (hodáj) نر. م. کجاوه، د ناوې لپاره د اوبښ يا پيل د پاسه کجاوه.
هوده (hodá) ښځ. م. ۱) سحر، کوډه، اوده، جادو، منتر، دم؛ ۲) د دم يا منتر اجازت.
هوده کول (hodakawál) مص. مت. دميل، په هوده کې راوستل.
هوډ (hoḍ) نر. م. ۱) د زړه خبره نه پرېښودنه، انکار کونه؛ ۲) تکل، عزم، قصد، تصميم.
هوډ کول (hoḍkawál) مص. مت. خلاف ويل، ردول، دروغجن کول.
هوډه (hóḍa) ښځ. م. ځېل، ضد، لانجه.
هوډه کول (hoḍakawál) مص. مت. ضد کول، ځېل کول.
هوډی (hoḍáy) ص. نر. م. وګ: هوډي.
هوډي (hoḍí) ص. نب. ۱) په خپله اراده قايم، د هوډ خاوند، مستقل مزاج؛ ۲) خلاف.
هوډيالی (hoḍyāláy) ص. نر. م. د هوډ ښتن، د کلکې ارادې او عزم خاوند.
هور[1] (hūr) نر. م ۱) حمله، يرغل، تاخت، ځغاست؛ ۲) هوسی؛ ۳) لا په شا په، ډيکه، ډبابه.
هور[2] (hor) نر. م ۱) د مرغانو د اوسېدو ځای، ځاله، منځاله؛ ۲) تېز، تونډ، چالاک.
هورتور (hórtor) نر. م. ۱) چټک، تېز، بيړندی؛ ۲) ص. نر. م. مېړنی، بهادر، هورتور ځوان.
هورته (hórta) ق ۱) هغه طرف ته، هلته؛ ۲) پورته.
هورې (hóre) ق. هغه خوا، هلته، هغلته.
هورې وورې (hórewóre) ق. آخوا دېخوا، هلته دلته.
هوږه (hū́ẓa) ښځ. م. اوږه، يو ډول نبات دی چې تېز او تند بوی لري.
هوږی (hoẓáy) نر. م. اوږی، د ښنو يو ډول، يو ډول ساراني نبات دی.
هوس (hawás) نر. م. ۱) لالچ، حرص؛ ۲) لوږه، ارمان؛ ۳) هيله، لېوالتيا، تمه؛ ٤) خوشحالي.
هوسا (hosā́) نب. مطمين، آرام، ډاډه.
هوساتوب (hosātób) نر. م. هوساينه، آرام، اطمينان.
هوساکېدل (hosākedál) مص. ل. سا اخيستل، دمه کول، آرامېدل، مطمين کېدل.
هوس انګېز (haswasangéz) ص. نر. م. هوس اوچتوونکی، جنسي لېوالتيا، بيداروونکی.
هوساينځی (hosā́yanǰáy) نر. م. د هوساينې ځای، د استراحت ځای، تفريحځی.
هوساينه (hosāyána) ښځ. م. هوسايي، آرامتوب، آراموالی، هوساوالی.
هوسايېز (hosā́yíz) نر. م. هوساينيز، استراحتي، تفريحي.

**هوس پرستي** (hawasparastí) ښځ.م. نفسياتي لېوالتيا پالنه، حرص، لالچ.

**هوس ناک** (hawasnák) ص. نر.م. عياش، لالچي، حرصناک، حريص.

**هوسۍ** (husáy) ښځ.م. ۱) نرکښې، وسۍ، سګه؛ ۲) غرڅه، غرڅنۍ.

**هوسېدل** (hawasedál) مص. ل. ۱) هيله کول؛ ۲) خوشحالېدل؛ ۳) د يو شي په تمه اوسېدل.

**هوسۍ سترګې** (husaystárge) ص. ښځ.م. ۱) د هوسۍ په څېر ښايسته سترګې، تورې سترګې؛ ۲) مج. ښايسته او ښکلې پېغله.

**هوسۍ شيدې** (husayšedé) ښځ. ج. هغه سپينه مايع چې په پسرلي کې د کانيو له منځه راوځي.

**هوش** (hoš) نر.م. فهم، ادراک، عقل، هوښ.

**هوښ** (hoṣ) نر.م. پوهه، ادراک، عقل، هوش.

**هوښيار** (hūṣyár) ص. نر.م. څيرک، عقلمند، قابل، عاقل، لايق.

**هوښيارتيا** (hūṣyārtyá) ښځ.م. قابل توب، لايق توب، څيرکي، هوښياري.

**هوښيارول** (huṣyārawál) مص. مت. پوهول، قابلول، عقلمند کول، پوهه ورکول.

**هوښيارېدل** (hūṣyāredál) مص.ل. عقلمند کېدل، پوهېدل، څيرک کېدل.

**هوک** (hūk) ص. نر.م. ۱) په خيال کې ورک، لاهو؛ ۲) پړسېدلی.

**هوک پوک** (húkpūk) نر.م. په تصور کې ورک، په خيالونو کې ډوب، مغرور، کبرجن.

**هوکړه** (hokṛa) ښځ.م. ژمنه، وعده، لوظ، اقرار، ژبه.

**هوکلۍ** (hóklay) ښځ.م. بغرۍ، لنګرۍ، لرګين هاونګ، اونګ.

**هوکول** (hokawál) مص. مت. هاو کول، اقرار کول، ژمنه کول.

**هوکه**[1] (hawká) ص. نب ۱) ډېر ستړی، ستومانه؛ ۲) ربړونه، ستړی کونه.

**هوکه**[2] (hoká) ښځ.م. هوکړه، اقرار، ژمنه، مننه.

**هوکه سوکه** (hokásoká) ښځ.م. ناقراري او قراري، کوله بوله، کله آرام او کله کړاو.

**هوکی**[1] (hokáy) نر.م. ۱) په کوژدن کې د جلۍ وعده او اقرر اخيستنه، کوټ؛ ۲) هو، اقرار.

**هوکی**[2] (haw káy) نر.م. تيګه وهل، له ستړيا نه ساه اخيستل.

**هول** (hawl) نر.م. ۱) وېره، فکر، بيره، تونده؛ ۲) وحشي؛ ۳) يو ډول لرګي؛ ٤) بلی، منيچو؛ ۵) د فقيرانو د خير غوښتو آواز؛ ٦) د دروازې د تمبې لرګی.

**هولکي** (hawlakí) ص. نب ۱) وارخطا، مشوش؛ ۲) بيره ناک، په تندۍ، وېرې اخيستی، خفه، پرېشان.

**هولناک** (hawlnák) نر.م. خطرناک، وېروونکی.

**هوله** (hawlá) ښځ.م. بيګار.

**هولي** (holí) ښځ.م. د هندوانو يو جشن چې په يو بل باندې رنګونه اچوي.

**هومره** (húmra) ق. دغه قدر، په دغې اندازې.

**هونډۍ** (hūndáy) ښځ.م. برات، حجت، وګ. هنډۍ

**هوڼا** (hūṇá) ښځ.م. وګ. هوڼه.

**هوڼه** (hūṇa) ښځ.م. پړکه، هغه لښته چې مرغۍ په کې نيول کېږي.

**هوڼۍ** (hūṇáy) نر.م. يو ډول ښکاري مرغه دی.

**هووۍ** (hawwáy) اد. د تعجب او حيرت کليمه.

**هوهو** (hoho) اد. بلې بلې.

**هوۍ** (haway) ښځ.م. د کلالانو کوره.

هویت (huiyát) نر.م. پېژندپاڼه، تذکره، شناختي کارت.
هویه[1] (hóya) ښځ.م. وګ. هګۍ.
هویه[2] (hóya) ښځ.م. اشاره، ها، هغه.
هویدا (hawidā́) نر.م. څرګند، ظاهر، ښکاره.
هوی (hoy) اد. اشاري ضمير دی، دا، دغه.
هوی (hawā́y) نر.م. دخاورینو لوبنو د پخولو پچه.
هه (ha) اد. هغه کلیمه چې د څه کار د منع کولو لپاره استعمالیږي.
هی (hay) اد. ۱) افسوس، های، د غم کلیمه؛ ۲) زیار؛ ۳) جمله، ٤) شورو غوغا.
هی (hay) د غواګانو د شړلو غږ.
هی هی (háyhay) اد. د تعجب کلیمه، های های، د غم کلیمه، د افسوس کلیمه.
هیأت (hayaā́t) نر.م. دخلکو یوه ډله، د دولتي مامورینو ډله.
هیبت (haybát) نر.م. ۱) ترس، وېره، وارخطایي؛ ۲) پرتم، شان و شوکت.
هیبتناک (haybatnā́k) نر.م. وېروونکی، بېروونکی، خطرناک.
هېټ (heṭ) نر.م. انګریزي خولۍ، انګریزي ټوپۍ.
هیجان (hayajā́n) نر.م. وېرې اخیستی، په قهر، په غوسه، احساساتي، جذباتي، پاریدل.
هیجرا (hijrā́) نر.م. ایجرا، ښځونی، ښځونک.
هیچا (hičā́) ق. د هیڅ او چا مرکب، څه هم نه، څوک هم نه.
هیچېرته (hičérta) ق. چېرې هم نه.
هیچېرې (hičére) ق. چېرې هم نه، په هیڅ قیمت نه، کله هم نه.
هېچ (heč) ص. نب. بې حقیقته، نه څیز، نشت، لږ.

هیڅ بې هیڅه (hicbéhica) ق. اسې داسې، خوشې په خوشې، چټې پټې.
هیڅکله (hickála) ق. هیڅ وخت.
هیڅوک (hicók) ق. هېڅا.
هېڅیال (hécyā́l) نر.م. ترمادي اخوا، ماوراء ماده، ماوراء ذره.
هیڅ یو (hicyáw) ق. هیڅ کومه.
هیداد (hidā́d) نر.م. سزا، رټنه.
هېر (her) ص. نر.م.ج. اېر، يېر، له یاده وتل.
هیر (hir) نر.م. د بېډیو یو ډول لوبه.
هیرا (hírā́) جن. ذات، جوهر، ګوهر.
هېرتوب (hertób) ص. نر.م. په وېرول، له زړه وتنه، هېرتیا.
هېرجن (herján) ص.نر.م. هېروونکی، هېرغالی، له یاده ویستونکی.
هېرغالی (hérğā́láy) نر.م. وګ.: هېرجن.
هېرندوکی (herandū́kay) ص.نر.م. هېرجن.
هېرو (heró) نر.م. ۱) د کیسې مرکزي نارینه کردار؛ ۲) مېړنی سړی، بهادر سړی، قهرمان، اتل.
هیروغلیف (hiróğlíf) نر.م. پخوانی مصري انځوریز لیک چې د هر ویي یا څپې لپاره یې یو یو انځور کاراوه.
هېرول (herawā́l) مص.مت. له یاده ایستل.
هېروین (heroyín) نر.م. له اپینو څخه جوړېدونکې سپینه او یوه نشه لرونکې ماده، پوډر.
هېره[1] (héra) ښځ.م. له یاده وتنه، هېرېدنه.
هیره[2] (hira) ښځ.م. ګیله، مانه، مانې، شکوه.
هېرېدل (héredál) مص. مت. له یاده وتل، ویرېدل، ایرېدل.

**هېرۍ** (heráy) ښځ.م. د خولې جنګ، خوله وهل.

**هیړ** (hiṛ) نر.م. ۱) حالت، دور، وخت، نوبت، وار؛ ۲) له یوې مخې.

**هیړه** (hiṛá) ښځ.م. ۱) خل، پېره، چل، وار؛ ۲) بې لمه مېړه، یېړی.

**هیړۍ** (hiṛáy) نر.م. هغه ګډ چې اوږده لکۍ لري.

**هیزه** (háyza) ص. نب. وګ. هیضه.

**هېږ** (heẓ) نر.م. وګ. یږ.

**هیسته** (hísta) ص. ق. هغې خواته، لېرې.

**هېښ** (heṣ) ص.نر.م. ۱) حیران، هک پک، ترهور؛ ۲) ساده؛ ۳) زهیر.

**هېښ پېښ** (héṣpeṣ) نر.م. اریان دریان، حیران، هک پک.

**هېښتوب** (heṣtób) نر.م. حیراني، ساده ګي.

**هېښمه** (heṣma) ښځ.م. وګ. هښمه.

**هېښنده** (heṣandá) ښځ.م. هېښوونکی، اریانوونکی، محیر.

**هېښني** (héṣani) ښځ.م. د هېښتیا اړوند، تعجبي.

**هېښوړتیا** (heṣwáṛtyā) ښځ.م. د حیرانتیا وړ، د تعجب وړ.

**هېښه** (heṣá) ښځ.م. حیراني.

**هیضه** (háyza) ښځ.م. شدید اسهال یا نس ناست چې د سوء تغذي له امله پیدا کېږي او ګرځون یا استفراق هم ورسره مل وي.

**هېغ پېغ** (héğpeğ) نر.م. شخ پخ، یخ دغ.

**هیکارل** (hekārál) مص. مت. وګ. شکارل.

**هیکل** (haykál) نر.م. ۱) د بتخانې مانۍ؛ ۲) پېرۍ، صورت، شکل.

**هی کول** (haykawə́l) مص.مت. شړل.

**هی کېدل** (haykedə́l) مص. مت. شړل کېدل.

**هېل** (hel) نر.م.ج. لاچي، سپین لاچي، یېل.

**هیلن** (hilán) نر.م. اسره من، امیدوار، هیله من، هیله مند.

**هیله** (hilá) ښځ.م. ۱) تمه، توقع، امید؛ ۲) نر.م. صرفه؛ ۳) حیله، بانه؛ ٤) صرف، فقط، ایله.

**هیله بیله** (hilabilá) نر.م. ۱) فقط، یوازې، ایله بیله؛ ۲) حق ناحق، غیرحق.

**هیله من** (hilamán) نر.م. هیله مند، امیدوار.

**هیله مند** (hilamánd) نر.م. وګ: هیله من.

**هیله مني** (hilamaní) ښځ.م. هیله مندي، امیدواري.

**هیلۍ** (hiláy) ښځ.م. صحرایي مرغاوۍ، ایلۍ.

**هیلې بیلې** (hilébilé) نر.م. د هلکانو یو دول لوبه ده.

**هیم** (hím) ص. نر.م. ورک، محوه.

**هینډه** (hínḍa) ښځ.م. مخالفت، ضد.

**هېنډه** (henḍa) ښځ.م. یو ډول لوبه ده.

**هینګ** (hing) نر.م. ۱) دخره اواز؛ ۲) فریاد.

**هنګۍ** (hangáy) نر.م. ۱) د کوچنیانو ژړا، د ناوې ژړا؛ ۲) د بیدیو یو ډول لوبه.

**هیڼ** (hiṇ) نر.م. زور، قوت، طاقت.

**هېندارپرېکون** (hendārprékūn) نر.م. ښیښه پرېکونه، شیشه بري.

**هېندار پرېکی** (hendārprékay) نر.م. ښیښه پرېکونی، هېندار پرېکونی، شیشه بر.

**هېندارساز** (hendārsáz) ص.نر.م. ښیښه ساز، شیشه ساز.

**هېندارسازي** (hendārsázi) ښځ.م. ښیښه سازي، شیشه ساز.

**هېنداروزمه** (hendārwázma) ښځ.م. د هېندارې غوندې، روښانه، روڼ.

**هېنداره** (héndára) ښځ.م. ښیښه، شیشه، آیینه.

**هېنداريز** ( hḗndārīz ) نر.م. د هېنداري غوندې.

**هين** ( hīṇ ) ص.نر.م. ننوتی، داخل.

**هينه** ( hiṇá ) ص. ښځ.م. ننوتې، داخله.

**هينی** ( hiṇáy ) ص. نر.م. تکړه، بهادر، طاقتور.

**هېواد** ( hḗwā́d ) نـر.م. ۱)وطن، مملکت؛ ۲)په فاصله، بعيد، لېرې.

**هېواد پال** ( hḗwadpāl ) نر.م. هېواد پالی، وطنپال، وطن دوست.

**هېواد پلورنه** ( hēwadplorána ) ښځ.م. ۱)هېواد پلورې، هېواد خرڅونه.؛ ۲)مج. له هېواد او ولس سره خيانت.

**هېوادنی** ( hewādanáy ) نر.م. ۱) لېرې، په فاصله؛ ۲)وطني، وطن سره اړوند؛ ۳)وطنپرست.

**هېوادوال** ( hewādwā́l ) نر.م. هېوادنی.

**هېوادواله** ( hewādwā́lá ) ښـځ.م. هېوادولې، هېواد پالنه، وطنپالنه.

# ی

**ی** (ye) ښځ.م. د پښتو الفبې یوڅلوېښتم توری، چې ابجدي ارزښت یې لس دی.

**یا** (yā) ق. ۱) په دوو یا زیاتو کې د یو ځانګړي کولو کلیمه؛ ۲) نه، هیڅ؛ ۳) اد. آه، د تعجب کلیمه.

**یاب** (yāb) اد. که د نوم په اخیر کې راشي موندونکی مانا لري، لکه: کامیاب، زرياب.

**یابو** (yābū́) نر.م. ټټو، آس،

**یات** (yāt) نر.م. پیدا کونه، موندنه.

**یاد** (yād) نر.م ۱) په حافظه کې ساتنه؛ ۲) د حافظې عمل، ذکر؛ ۳) مشهور.

**یادڅلی** (yā́dcálay) نر.م. یادګار څلی، د یادګار منار.

**یادښت** (yādə́ṣt) نر.م. یاددښت، یاداشت.

**یادښتوړ** (yadaṣtwā́ṛ) نر.م. د یادښت وړ، د نوټ کولو وړ، د یادونې وړ د یادښت قابل.

**یادښتلیک** (yadə́ṣtlik) نر.م. یادونلیک، یادداشتنامه.

**یادښتلیکچه** (yadə́ṣtlikča) ښځ.م. د یادښت کتابچه.

**یادښتول** (yadaṣtawál) مص.مت. په لیکلې بڼه یاد ته سپارل، د یو څه یادښت اخیستل.

**یادښتي** (yadəṣtí) ښځ.م. د یادښت اړوند، د یادښت مربوط.

**یادګار** (yādgā́r) نر.م. خیال، نښه.

**یادګاري** (yādgarí) ښځ.م. یادونې، د یادګار.

**یادګاري انځور** (yādgarianǰór) نر.م. یادګاري عکس، یادګاري تصویر.

**یادګاري جشن** (yādgarijıšā́n) نر.م. یادونې جشن، د یادګار جشن.

**یادګاري ډالۍ** (yādgariḍā́lá́y) ښځ.ج. یادونې ډالۍ، یادګاري تحفه.

**یادګېرنه** (yādgerána) ښځ.م. یادول، یادښت ورکول، وریادول.

**یاد لرل** (yādlarə́l) مص. مت. یاد ساتل، یادښت لرل، ذهن کې لرل.

**یادمانی** (yādmanáy) ښځ.م.ج. یادګاري مانۍ، یادګاري قصر.

**یادول** (yādawə́l) مص. مت. خیال کې راوستل، زوتول، حفظول.

**یادون** (yādún) نر.م. یادونه، یادښت.

**یادېدل** (yādedə́l) مص. ل. زوتېدل، یاذښت کې راتلل.

**یار** (yār) نر.م. ملګری، دوست، اشنا، اندیوال.

**یارانه** (yārāná) ښځ.م. ۱) ملګرتوب، دوستي، اشنايي، ملګرتیا؛ ۲) مج. عاشقي.

**یاربازي** (yārbāzí) ښځ.م. بدکرداري، ورانکاري.

**یارباش** (yārbā́š) نر.م. له دوستانو سره مینه کوونکی، دوستپال، مخلص، مینه ناک.

**یارباشنه** (yārbašā́na) ښځ.م. بدکاره، ډمه، فاحشه، هغه ښځه چې ډېر یاران ساتي.

**یارباشي** (yārbāsi) ښځ.م. دوستي، ملګرتیا.

**یارجان** (yārján) نر.م. خوږ ملګری، نږدې دوست، زړه ته راتېر ملګری.

**یارډ** (yārd) نر.م. د تو کرانو داندازه کولو مقیاس.

**یارغار** (yarǧā́r) نر.م. ۱) ډېر رازدار دوست، رښتونی دوست؛ ۲) دحضرت ابوبکر(رض) لقب.

**یارمخچکی** (yārmaxčakáy) ښځ.م. یارمخچی، یوه خړ رنګی مرغۍ ده.

**یاري** (yā́ri) ښځ.م. دوستي، اشنايي، ملګرتیا.

**یاس** (yās) نر.م. نهیلي، مایوسي، نااميدي.

**یاست** (yāst) ق. د فعل وروستاړی دی.

**یاسته** (yāstá) ښځ.م. بیاسته، رسۍ، پړی.

**یاستئ** (yā́stay) ق. و ګ. یاست.

**یاسمن** (yāsamán) نر.م. چنبه، یو ډول ګل.

**یاسمین** (yāsamín) نر.م. یاسمن.

**یاغي** (yāǧí) ص.نب. باغي، نافرمان، سرکښ.

**یاغیتوب** (yāǧitób) نر.م. نافرماني، بغاوت.

**یاغیستان** (yāǧistán) نر.م. یاغیګړ، د یاغیانو سیمه، غیره علاقه، هغه سیمه چې د حکومت له کنترول څخه بهروي.

**یاغیګړ** (yāǧigáṛ) نر.م. و ګ. یاغیستان.

**یاقوت** (yāqút) نر.م. یو قیمتي سور کانی دی.

**یاقوتي** (yāqūtí) ص.نر.م. سور رنګ لرونکی.

**یال** (yāl) نر.م. ۱) د ځاروي یا د آس د څټ وېښته؛ ۲) څټ، غړی، د ځناور څټ.

**یالی** (yāláy) اد. یو وروستاړی او د نسبت کلیمه چې د ځینو نومونو په آخر کې راځي او له نوم څخه فاعل نوم جوړوي. لکه: د جنګ نه جنګیالی.

**یامېدل** (yāmedə́l) مص.ل. ښه چورلېدل، ګډېدل، یمبدل، نخېدل.

**یاور** (yāwár) نر.م ۱) مرستیال؛ ۲) دوست، ملګری.

**یاوري** (yāwarí) ښځ.م. مدد، مرسته، کومک.

**یاول** (yāwə́l) نر.م. زېړو، زېړانک، بلبل، سریانکه، ښکلې زېړه تور و تکو واله مرغۍ.

**یاوه** (yāwá) ص. نب. بې ګټې، چټي، عبث.

**یاهو** (yāhū) نر.م. حق دوست، یو ډول مرغۍ ده.

**یابرا** (yābrā́) ښځ.م. و ګ. ایبرا.

**یبره** (yabrá) ص. نر.م. یو کلن وری.

**یبل** (yabə́l) اد. بربنډ، لوڅ، زیاتره له پښو سره راځي لکه: پښې یبل.

**یتیم** (yatím) ص. نر.م. چې پلار یې مړ وي.

**یتیم خونه** (yatímxūná) ښځ.م. د یتیمانو د اوسېدو ځای، د یتیمانو پالنځی.

**یخ** (yax) ص. نر.م. ۱) سوړ؛ ۲) نر.م. کنګل.
**یخاو** (yaxáw) نر.م ۱) یخني پیدا کېدنه، یخوالی؛ ۲) یخې اوبه.
**یخ پخ** (yāxpax) نر.م.ج. ۱) یخ مخ، سوړ سمخ؛ ۲) بې حسه، بې حرکته، دم وتلی، ساه وتلی.
**یخپلور** (yaxplor) نر.م. یخپلورنه، کنګل خرڅونه.
**یخپلوری** (yaxploray) نر.م. یخ والا، کنګل خرڅوونکی، واوره پلورونکی.
**یخپېر** (yaxper) نر.م. یخچال پېر، یخچالي پېر، کنګل پېر، د کنګل دوره.
**یخچال** (yaxčal) نر.م. کنګلنی، کنګلځی، سړوبی.
**یخچالي** (yaxčali) ښځ.م. د یخچال اړوند، پر یخچال مربوط.
**یخدان** (yaxdán) نر.م. ۱) له خرمنې جوړ شوی مخصوص صندوق؛ ۲) یو ژور ځای چې په ژمي کې د اوړي لپاره واوره په کې اچوي او ساتي یې.
**یخزنی** (yaxzáṇay) ص. نر.م. منجمد، له یخنۍ کنګل شوی، د یخنۍ له لاسه ګونځې شوی.
**یخساز** (yaxsáz) ص. نر.م. یخ جوړوونکی سړی یا لوښی.
**یخسازي** (yaxsāzí) ښځ.م. یخ جوړونه، کنګل جوړونه.
**یخلوبه** (yaxloba) ښځ.م. کنګل لوبه، یخ ښویېدنه.
**یخ ماتې** (yāxmáte) ښځ.م. ترمې، نیمترې، تمنې، داسې اوبه چې نه یخې او نه ډېرې تودې وي.
**یخ مار** (yāxmár) نر.م. یو ډول مار دی چې پېښې لري.
**یخمالک** (yaxmálák) نر.م. ښویانک، د کنګل شوي یخ پر مخ یو ډول لوبه.
**یخني** (yaxní) ښځ.م. ۱) ښوروا؛ ۲) د ژمي موسم.
**یخني ښوروا** (yaxniṣorwá) د ایشولي غوښې اندی یا زومنه چې مرچ مساله ورسره ګډ نه وي.
**یخول** (yaxawál) مص. مت. ۱) سړول؛ ۲) وژل؛ ۳) سزا ورکول.
**یخوالی** (yaxwálay) نر.م.ج. د یخېدو حالت، یخېدنه، یخني.
**یخه سیلۍ** (yaxasilấy) ښځ.م. د سړو څپه، سېلاو، یخ باد.
**یخی** (yaxáy) نر.م. کنګل، یخ.
**یخېدل** (yaxedál) مص. ل. سړېدل، غوښتنه پوره کېدل.
**یدل** (yadál) مص.ل. دلازمي مصدر نښه (وروستاړی) لکه: ژړېدل، خندېدل.
**یر** (yar) نر.م. یو ډول اس.
**یرړی** (yarṛáy) نر.م. ایړی، هرړی، یو ډول ګډ.
**یرغز** (yarğáz) نر.م. مجرد، یوازې.
**یرغکی** (yarğakáy) نر.م. یو ډول مرغۍ.
**یرغل** (yarğál) نر.م. حمله، برید، ناڅاپي حمله.
**یرغلګر** (yarğalgár) ص. نر.م. حمله کوونکی، برید کوونکی، چپاولګر.
**یرغلي** (yarğalí) ښځ.م. یرغلیز، یرغلګرانه، تهاجمي.
**یرغلیز** (yarğalíz) نر.م. یرغلي، تهاجمي، پر یرغل اړوند.
**یرغلیزسیاست** (yarğalizsyását) نر.م. تعرضي سیاست، تهاجمي سیاست.
**یرغلیزې وسلې** (yarğalizéwasle) نر.م. یرغلیزې درستې، یرغلیزې سلاح ګانې.
**یرغمل** (yarğamál) نر.م. یرغمال، برمته، هغه څوک چې د پیسو لپاره تښتول کېږي.
**یرغمل بیه** (yarğamál báya) ښځ.م. بونګه، د برمتې په مقابل کې پیسې.

**یرغملګر** (yarğamalgár) نـر.م. یرغـملګـری، برمته کوونکی، یرغمل نیوونکی.

**یرغمل نیـونه** (yarğamálniwána) ښـځ.م. یرغملګري، برمته کونه.

**یرغمل نیوونکی** (yarğamálniūnkay) نـر.م. یرغملګر، اختطافوونکی.

**یرغمل وژنه** (yarğamálwažána) ښځ.م. د یرغمل یا برمته شوي کس وژنه.

**یرغمل وژونکی** (yarğamálwažūnkay) نر.م. برمته وژونکی.

**یرغه** (yarğá) ص. نر.م. د آس یو ډول اوار تګ.

**یرغی** (yarğáy) ښځ.م. لوګی، تورکي، هغه توري ایرې چې په چت کې نښتې وي.

**یرندوکی** (yarandūkay) نر.م. یرندوک، ډارن، بېرندوک، یرجن.

**یرول** (yarawə́l) مص.مت. ډارول، وېرول، ترول.

**یرېدل** (yaredə́l) مص.ل. وېرېدل، ډارېدل.

**یزغلامي** (yazğulamí) نر.م. یوه پامیري ژبه ده چې په واخان کې ویل کېږي.

**یړ** (yaṛ) نر.م. یرغل، هجوم، حمله، چپاو.

**یړاو** (yṛáw) نر.م. یو ډول شین او تریخ بوټی دی.

**یږ** (yaẓ) نر.م. میلو، یږ، یو ډول وحشي حیوان.

**یږه** (yáẓa) ښځ.م. یو ډول دانه، د سرطان دانه.

**یږه** (yažá) ښځ.م. یږې، وګ. پهلوځی.

**یسار** (yasár) نـر.م. ۱) بدښـاګـومی، بدمرغی؛ ۲) کیڼ لاس؛ ۳) ډېر زیاتوالی.

**یستل** (yastə́l) مص.مت. ایستل، ویستل.

**یسیر** (yasír) ص. نر.م. مور مړی کوچنی.

**یسېدل** (yasedə́l) مص. ل ۱) پاتې کېدل، اوسېدل؛ ۲) ګنډل، لکه: ښه ګنډل، ښه ایسېدل.

**یشنا** (yašna) ښځ.م. څوبس، خوټ، ایشېدنه.

**یشناټکی** (yašnatakay) نـر.م. د څـوبس نقطه، درجه غلیان.

**یشول** (yašawə́l) مص. مت. جوشول، ایشول.

**یشېدل** (yašedə́l) مـص.ل. خـوټېدل، ایشېدل، جوشېدل.

**یښودل** (yaṣodə́l) مص. مت. ایښودل، کښېښودل.

**یښول** (yaṣowə́l) مص.مت. یښودل.

**یعني** (yaʕné) اد. مطلب دا، یاني، غرض دا، دا چې.

**یغما** (yağmá) ص. نب. د لوټمال، تالان.

**یغنوبي** (yağnūbí) ښځ.م. یوه پامیري ژبه چې په تاجکستان کې ویل کېږي.

**یقین** (yaqín) نر.م. اعتبار، اعتماد، باور.

**یقیناً** (yaqinán) ق. هرومرو، خامخا، بې شکه، په یقین.

**یقیني** (yaqiní) نر.م. خامخا، هرو مرو، بې شکه، لازمي.

**یکامانه** (yakāmána) ص. نر.م. سراسر، له یوې مخې، له یوې خوا، له ښهرمی.

**یکاوه** (yakāwá) ښځ.م. لیوه وربخ، په اسمان را خوره وربخ، ګوره وربخ، توره وربخ.

**یکدګ** (yákdag) نر.م. پوخ پنیر.

**یکړ** (yakáṛ) ص. نر.م. یوازې، یو، تنها.

**یکۍ** (yikə́y) ښـځ. ج. ۱) پخـوانۍ، وړې روپۍ؛ ۲) فلس؛ ۳) بایسکل.

**یګه** (yagá) ښځ.م. د آسونو دلکۍ د تویېدو ناروغي.

**یګۍ** (yagə́y) ښځ.م. په لرګیو سره یوه لوبه ده.

**یل** (yal) نر.م. بهادر، مېړنی، اتل، پهلوان، باتور.

**یلدا** (yaldá) ص.نر.م. اوږده شپه، له تولونه اوږده تیاره شپه، د لیندۍ د میاشتې اخره شپه.

**یلغار** (yalğár) نر.م. یرغل، حمله.

**یلغز** (yalğáz) ص.نر.م. یل، یوازې، آزاد، مجرد.

**يله** (yála) ص. نب. ۱)اواره، آزاد، پرانيستی، خوشي؛ ۲) هيله؛ ۳)ښځ.م. ختينه ځمکه؛ ۴)صرفه، اسره.

**يم** (yam) نر.م. ۱)سمندر، سيند؛ ۲)حصه، اړخ.

**يما** (yamá) ښځ.م. ۱)د اريايانو افسانوي پاچا يا لومړنی پاچا؛ ۲) يوه ځانګړی نوم دی.

**يمال** (yamā́l) نر.م. پخلا کول، له ژړا نه کرارول؛ ۲)ف. د واورې راښويېدنه، برف کوچ.

**يمال** (yamā́l) ص.نر.م. مستېدل، نشه کېدل.

**يمن** (yamán) نر.م. سعادت، خوش نصيبي، کاميابی.

**يمنول** (yamnawә́l) مص. مت. منع کول، شړل، ايمنول.

**يمنېدل** (yamnedә́l) مص.ل. منع کېدل، ايمنېدل.

**يمول** (yamawә́l) مص.مت. چورلول، ګډول، تاوول.

**يمېدل** (yamedә́l) مص.ل. ۱)د سر ګرځېدل، ګډېدل؛ ۲)نشه کېدل، مستېدل.

**يمين** (yamín) نر.م ۱)سوګند؛ ۲)طاقت، توان؛ ۳)ښی لاس.

**ين** (yın) ور، لکه: ورين، مالګين.

**ينجه** (yı́nja) ښځ.م. و ګ. هنجه، اينجه.

**يندره** (yındrá) نر.م. ۱)اوسپن خور، برجو، د چرې د تېرې کولو کانی؛ ۲)څرخ.

**ينده** (yındá) نر.م. و ګ. هنده، اينده.

**ينډه** (yanḍá) ښځ.م. سرکښي، بغاوت، ضد.

**ينګ** (yang) نر.م. حال، صورت، وعده، نيته، لفظ، توګه، رنګ، وجه، ډول، چلند، شرط.

**ينګه** (yangá) ښځ.م. ۱)د کلالانو يوه آله چې ګرې او کټوې پرې ښويولی شي؛ ۲)د چارې غاړې ته د کشولو لپاره پرې اچول چې دوه سرونه ولري

**يو** (yū) ف. ج. د جمع متکلم صيغه—موږ يو.

**يواړخيز** (yawarxíz) ص. نر.م.ج. يوطرفه.

**يوازې** (yawā́ze) ص.نب. يواځې، ګوښې، ځانله.

**يوازېتوب** (yawāzetób) نر.م. يوازې والی، يوازې کېدل، تنهايي، يوازې کېدنه.

**يوازېنی** (yawāzenáy) ص.نر.م. خاص، خالص، ځانګړی، تنها.

**يوبندی** (yawbánday) نر.م. يونليز ټوپک، يو ډول پخوانی ټوپک.

**يوبه** (yūbá) نر.م. بزګر، دهقان.

**يوپ** (yūp) نر.م. غرق، ډوب شوی، غوپه.

**يوپټه** (yawpaṭá) ص. نب. يو پرده يي، يو لايي، يو پټ واله، لکه يو پټه کمپله.

**يو پلا** (yawplā́) ق. يو وار، يو ځل.

**يو په دوه** (yáwpadwa) ص. نب. دوه چنده، دوه وارې، دوه برابره.

**يو په يو** (yáwpayaw) ق. ځان ځان له، يو يو.

**يو تربله** (yáwtәrbála) ق. خپلوکې، يو له بله.

**يوتول** (yawtawә́l) مص.مت. موندل، راپيدا کول.

**يوتېدل** (yawtedә́l) مص.ل. موندل کېدل، ياتېدل.

**يوځای** (yawǰáy) ص. نر.م. په شريکه، په غونډه، په ګډه.

**يوځل** (yawǰә́l) ق. يو وار، يو پلا، يو نوبت.

**يوڅو** (yawcó) ص.نب. څه ناڅه، لږ.

**يوڅوک** (yawcók) ص. م. يو کس.

**يو څه** (yawcә́) ص.نب. څه ناڅه، لږ، لږ څه.

**يوډړدنګ** (yawdaṛdáng) ص. نر.م. يو شان حرکت، يو حرکت، يوه خوځېدا.

**يودم** (yawdám) ق. نابېره، سمدواره، يو ناڅاپه، دفعتاً.

**يوډزی** (yawḍázay) ص. نر.م. يوميله، يونليز، يو کارتوس والا ټوپک.

**يور** (yor) نر.م. : ليوره ښځه.

**یو رنګه** (yawranga) ص. نب. ۱) یو رنګ؛ ۲) پرلپسې، مسلسل.

**یورولوژي** (yorolozi) ښځ.م. د بولي تناسلي سیستم د جراحۍ یوه څانګه ده.

**یوړ** (yoṛ) نر.م. بالغ هلک، میړاني وهلی هلک.

**یوړاینه** (yoṛāyaná) نر.م. داډ ګېرنه، تسلي.

**یوزري** (yawazáray) ص. نر.م. یوازې، تنها، بې کسه، یو وزری.

**یوزړی** (yawzáṛay) ص. نب. د یوې لارې والا، داده، اخلاصمند، مخلص، بې ریا.

**یوژبی** (yawžábay) ص.نر.م. رښتونی، د وعدې پابند.

**یوژی** (yawžáy) ښځ.نر.م. یو تول چې له دوولسو لپو سره برابر وي.

**یوځی** (yawẓáy) ښځ.م.ج. دوولس لپې.

**یوستوی** (yawastáway) ص. نر.م. نری، یوتا، یوازې.

**یوشان** (yawšān) ص. نب. یو ډول، یو راز.

**یوشانته** (yawšánta) ص. نب. سره ورته، یو رنګ، متحد الشکل.

**یوشی** (yáwšay) نر.م. یو رنګ، یو ډول، یو شان.

**یوطرفه** (yawtarafá) ص. نب. یو لوری، یوه خوا.

**یوغ** (yoğ) نر.م. جغ. هغه آله چې د قولبې په وخت کې د غوایانو په غاړه کې اچول کېږي.

**یوکلن** (yawkalán) نر.م. د یو کال، یو کلیز.

**یوقلم** (yawqalám) ق. په یو لاس لیکل شوی.

**یوکول** (yawkawál) مص.مت. متحدول، اتفاقول.

**یولاس** (yawlās) ص. نب. یو موټی، په یوه اتفاق.

**یولور** (yawlór) نر.م. یو خوا، یو طرف.

**یولوریز** (yawloríz) نر.م. یو طرفه، یوه خوا، یو څنګیز.

**یوله بله** (yawlabála) ق. یو تر بله.

**یوم** (yūm) نر.م. بېل، د کرکېلې یوه آله.

**یومخ** (yawmáx) ق. ۱) پرله پسې، متواتر، تول؛ ۲) له یوې خوا.

**یومختوب** (yawmaxtób) نر.م. صداقت، رښتیاوالی، یومختیا.

**یومخی** (yawmáxay) نر.م. صادق، مخلص، رښتونی، یو مخیز.

**یومخیز** (yawmaxíz) ص.نر.م.ج. له یوې مخې.

**یومکی** (yawmakáy) نر.م ۱) د اوړي یوم، وړوکی یوم؛ ۲) د ملا تبخی.

**یومنزله** (yawmanzalá) ص. نب. یو پوړیز، یوچته.

**یوموټی** (yawmúṭay) ص.نر.م. یو ځای، متحد، په اتفاق.

**یوم والا** (yūmwālā) نر.م. د کرکېلې سړی، بېل والا، د یوم څښتن.

**یومیه** (yawmıyá) ښځ.م. د ورځې مزدوري، ورځنی اجوره، هره ورځ.

**یون** (yūn) نر.م. ۱) تلل، تګ، رحلت؛ ۲) خوی، عادت.

**یونان و باختري** (yūnanobāxtári) ښځ.م. هغه یوناني فرهنګ و تمدن چې په باختر کې منځته راغلی دی.

**یون دود** (yūndód) نر.م. د یون رسم، رسم ګذشت.

**یونل** (yūnál) مص.ل. تګ کول، تلل، رفتار کول.

**یونلیک** (yūnlík) نر.م. د یون پېښې لیکنه، سفرنامه.

**یونسکو** (yūnaskó) ښځ.م. د ملګرو ملتونو یو کلتوري مرکز.

**یونوځی** (yawnūẓáy) نر.م. یو جنسی، یو جنس، یو ډول.

**يونوزي** (yawnūẓi) ښځ.م. يوجنسي، يو جنسوالی.

**يونيم** (yawním) اد. ځيني، بعضي، يو او نيم.

**يونيسف** (yūnisíf) نر.م. د ملګرو ملتونو د ماشومانو د روزنې او پالنې سازمان.

**يونيفورم** (yūnifórm) نر.م. يو شان، يوشيز، يو بڼه ييز، يو ډول کالي، يو ډول جامې.

**يوڼي** (yuṇí) ښځ.ج. بور، د دوو ورونو ښځې.

**يووار** (yawwár) نر.م. يو ځل، يونوبت.

**يوواله** (yawwála) ښځ.م. يووالی، اتفاق، اتحاد.

**يووالی** (yawwálay) نر.م. يوواله.

**يوخت** (yawwáxt) نر.م. يو وقت، يو مهال.

**يووختيز** (yawwaxtíz) ص. نر.م. ج. د يو وخت، يو وقته، د يوه وخت، د يوه مهال.

**يوورګ** (yawwárg) نر.م. يو کلن اوبښ.

**يووزری** (yawwazáray) ص. نر.م. بې کسه، يوازې، تنها، هغه سړی چې څوک و نه لري.

**يوون** (yawún) نر.م. يووالی، وحدت، واحدتوب.

**يوه** (yawá) ښځ.م. ييوې، قولبه، کولبه.

**يوه خوا** (yawaxwá) ښځ.م. يو طرف، يو اړخ.

**يوه خوله** (yawaxwlá) ښځ.م. په يوه اتفاق، په يو غږ.

**يوه ګړی** (yawgaṛáy) ښځ.م. يو ساعت، يوه شيبه.

**يوې** (yáwe) ښځ.م. و ګ. يوه.

**يه** (ya) ق. ۱) نه، د نه کولو مفهوم؛ ۲) اد. يا، اې، جاته د آواز کولو کليمه.

**يهودپال** (yahodpál) نر.م. صهيونيستي، صهيوني، صهيونګرا.

**يهودواله** (yahodwálá) ښځ.م. يهودپالنه، صهيونيزم.

**يې** (yé) ښځ.م ۱) د «ی» توری تلفظ؛ ۲) اد. د مفرد مخاطب ضمير دی لکه شته يې؛ ۲) غايب ضمير لکه: کتاب يې. د مخاطب جمع لکه: تاسو يې.

**يېبرور** (yebrawár) نر.م. حاصلناک، ښېراز، بار لرونکی، مثمر.

**يېبروري** (yebrawarí) ښځ.م. حاصلناکي، ښېرازي، مثمرتوب.

**يېبره** (yébra) ښځ.م. د کښت حاصل، د مېوو يا نورو شيزونو حاصل، نتيجه.

**يېدغا** (yedğá) ښځ.م. يېدغه، يوه پاميري ژبه ده چې په شمال ختيزه اريانې کې راځي.

**يېړ** (yeṛ) نر.م. ۱) يو ګروپ ښېري، يوه بحري قوم چې د يوه قوماندان تر امر لاندې وي؛ ۲) و ګ. اېړ.

**يېړمشر** (yeṛmašár) نر.م. د بېړيو يا د لرګيو او نورو د کاروان او قافلې مشر.

**يېلاق** (yeláq) نر.م. بانده، له ښاره بهر هغه يخ ځای چې خلک په کې د ګرمۍ موسم تېروي.

# دانش خپرندويې ټولنې خپاره کړي کتابونه

د سرو زرو صندوق ۱ ـ ۶ ټوک ----------
قرآن کیسې ۱ او ۲ ټوک ----------
فلاح دارین ----------
اخلاق محمدي ----------
د عبرت انګازې ----------
شمېر پوهنه E پښتو ډکشنري ----------
واژنامه کمپیوتر ----------
E ګرامر ښوونځي تر پوهنتونه ----------
رهنمای دستور زبان ----------
اکسل پښتو دري ----------
وینډوز پښتو دري ----------
هارډویر پښتو دري ----------
پېنټ (پښتو، دري) ----------
ورډ (پښتو، دري) ----------
پښتو E خود آموز ----------
د الماني ژبې ګرامر ----------
کورنی طبیب ----------
عامې ناروغۍ ----------
صدري جراحي اساسات ----------
طبي ترمینولوژي ----------
مکروبي ناروغۍ ----------
اروايي روغتیا ----------
اسرار تندرستي بدن ----------
لوخ رازونه ----------
افغاني خواړه ----------
د افغانستان محلي خواړه ----------
ویې پېژنه ویې خوره ----------
کوچنیانو روزنه ----------
روح تل پاتې ژوند ----------
فن زنا شوئی ----------
جنسي اړیکې ----------
ناتوانهای و بي میلی را به غذا معالجه کنید ----------

اموزش زنا شوئی ----------
تقویت نیرو جنسی ----------
بیماریها و انحرافات روانی ----------
میتودهای کلنیکی طبی ----------
پښتو انګلیسي فلسفي قاموس ----------
انګلیسي ـ پښتو قاموس ----------
اداره Management ----------
تاج التواریخ ----------
د افغانستان راتلونکی ----------
افغانستان د تاریخ په رڼا کې ----------
سرې لښکرې په افغانستان کې ----------
آیینې ----------
افغانستان لنډ تاریخ ----------
افغانستان دیموکراسي او جمهوریت ----------
غرونه کساتونه ----------
کوچیانۍ پانګه ----------
ستوري د ادب په اسمان کې ----------
پټانز پشتانه ----------
پښتانه (ترږی) ----------
د شلمې پېړۍ تر نیمايي (دویم چاپ) ----------
افغان مېرانه او غمیزه (دویم چاپ) ----------
افغانستان تر وروستي افغانه ۱ـ۳ ټوک ----------
زما ژوند له غلا تر پاچاهۍ ----------
اسناد و نامه های تاریخ ----------
بش په جګړه کې ----------
د خپلواکۍ لمر څرک ----------
د افغانستان سقوط ----------
افغان مېړني او تاریخي پېښې ----------
تاریخ خط ----------
افغانستان چه میګذشت ----------
...نستان در قرن بیستم ----------
بازی بزرګ ----------

افغانستان بعد از پیروزی انقلاب اسلامی --------------
سقوط افغانستان --------------
تاریخ احمدشاهی --------------
جریانات تاریخی افغانستان --------------
نامه احمدشاه بابا به سلطان --------------
رازیکه نمی خواستم افشا کنم --------------
تاریخ مختصر افغانستان --------------
رجال و رویدادهای تاریخی --------------
اتش سرخ در افغانستان --------------
یاداشت های من --------------
نقد مسیر تاریخ --------------
خسارات وارده به فرهنگ افغانستان --------------
گنگ سخن گو --------------
افغانستان ستیج بازی بزرگ --------------
هفتادو سه ملت --------------
دست های مخفی و سیاست های علمی --------------
دیوان شاه شجاع --------------
هفت دامن گل --------------
پرسش و پاسخ علمی --------------
سرودهای دریا --------------
گلزار لطائف --------------
دیوان عایشه درانی --------------
در زوایای تاریخ افغانستان --------------
سیمای سینمای افغانی --------------
شاهکار های ادبی --------------
روش نوین --------------
افکار جاوید --------------
یکدسته گل --------------
اشک داغ --------------
افغانستان در مسیر تاریخ --------------
طالبان چگونه امدند --------------
زندگی من از رهزنی تا پادشاهي --------------
گنجینه سخن --------------

ادبیات او د انسان دننني نړۍ --------------
ژوري خبرې --------------
د خیمې سیوري ته --------------
بوره ونه --------------
سیوری (ناول) --------------
انسان - صفر --------------
د سین غاړې ګلونه --------------
د ښاپېرۍ ورغوي --------------
مفتي عبدالحنان دیوان --------------
الفت مرغلري --------------
الفت نثري کلیات --------------
دا هم هغسې موسم دی --------------
په سکروټو کې مزلونه --------------
پشتو پښتویه ګرامر --------------
اولسي سندرې ۵ جلده --------------
...دې کلي کې نه اوسم --------------
د خوشال ادبي پښتو --------------
هرې تپې ته د جرګو سره ځم --------------
احمدشاه بابا دیوان --------------
د رحمان بابا کلیات --------------
جانانه ستا تر دره خنګه درشم --------------
د فکر تالونه --------------
چنار خبرکوی --------------
شین تاغی --------------
د سمڅی یاران --------------
ولی خوروږو --------------
مشکنږې --------------
توچی چیی چیی --------------
د کرمی په غاره --------------
دیوی دسیاست تنسته --------------
پانه ورژیده --------------
ګل داسویلو --------------
زموږ سلګی --------------

ښېو کې انځورونه ------------
ګټيالي ---------------------
خوږې خبرې ------------------
خير شر کوچنيانو لپاره -----------
خانګه ----------------------
ارفعيت کره کتنه --------------
کره کتنه --------------------
يوسف زليخا ------------------
له ماښامه تر ماښامه ------------
جل وهلې هيلې ----------------
هغه لېونى وه -----------------
نره ژبه ---------------------
لو ى د لونګو ----------------
ګل تان سندرې ---------------
بو ا په افغانستان کې -----------
له نرګسه تر نرګسه -------------
د علي خان ديوان --------------
لوى احمدشاه بابا --------------
د کوچنيانو جراحي (طبي) ---------
د شکرې ناروغي (طبي) ----------
پلوشې (شعر) ------------------
د بياض ديوان (شعر) ------------
د کاظم خان شيدا ديوان ----------
مرغلره (ناول) ----------------
خوبونه ----------------------
د ژوند نغمه ------------------
د سولې په وخت کې د دولتونو... ----------
د طاووس ښکه -----------------
ځئ چې خو جنت ته --------------
افغانستان پېژندنه --------------
حمن ا (ښېر ه) کامل مومند ----------
د سياسي اصطلاحاتو قاموس ---------
و، نه و، يو شپون و --------------

ملا نصر الدين ------------------
په فلسفه کې تلپاتې پېښې ----------
خوابښې اينکور -----------------
توري چې رڼا کوي ---------------
د عبدالحميد مومند کليات ----------
د اتڼ نارې --------------------
د منار خوا ته ------------------
له سروبي تر اسماره --------------
شناخت اديان و مذاهب -------------
مرګ منظر ---------------------
د پښتو ادبياتو تاريخ (حبيبي) ---------
ګر بواله ----------------------
د نيمو شپو خبرې ----------------
بهيج سياسي قاموس ---------------
راځئ چې بيا وخاندو --------------
د کاڼي اوښکې -------------------
متون نظم غنائى ------------------
ضرب الامثال و کنايات -------------
زندګى ناصر خسرو ----------------
ضرب المثلها و کنايات در مثنوى مولوى جلال الدين ----------
ناصر خسرو در لابلايى تذکره ها --------
سماع و پيشينه آن ----------------
ضرب المثلها در لابلاى ديوان ناصرخسرو ----------
متون نظم و نثر عرفانى -------------
اشعار شهيد بلخى ابو شکور ----------
بيايد از مولانا بياموزيم -------------
طلايي هار ---------------------
لپه --------------------------
بس همداسې ښه يم ----------------
خوشال خان ختك (ښېرنه) کامل مومند ------
مکاره ګيدړه -------------------
ځولى ګلونه ---------------------
سندريز شفقونه ------------------